پښتو لغت

# درياب

مؤلفين
قلندر مومند
فريد صحرائی

اين-ډبليو-ايف-پی ټيکسټ بک بورډ پېښور

# پښتو لغت

# درياب

مؤلفين

قلندر مومند

فريد صحرائی

اين-ډبليو-ايف-پي ټيکسټ بک بورډ پېښور

| | |
|---|---|
| چاپ کوونکے | حاجی خواج محمد |
| چاپخانه | اُمید پرنټرز، دربار مارکیټ، لاهور |
| کمپوزرز | محمد امجد امین<br>جهانګیر |
| پروف ریډر | مظهر علی |
| تعداد | 4100 |
| د چاپ کال | 1994ء /1415ھ |
| اېډیشن | اول |
| قیمت | 450 روپۍ |

انتساب

دَ حافظ الملک حافظ رحمت خان بړېڅ

دَ ځوئ

نواب الله یار خان بړېڅ پهٔ نوم

چې پهٔ وړومبی ځل ئې کال ۱۸۰۸ء کښې

دَ " عجائب اللغات " پهٔ نامه دَ پښتو ، عربی ، فارسی او هندی لغت لیکلے وهٔ

## تشريحات

١ دَ کوم سېلاب دَ لاندې چې کرښه وی هغه به زورلے لُستے شی- لکه " شړلے " (شه-ړۀ-لے)-

٢ دَ " م " نه مطلب مونږ دے او چې کومو ټکيو سره دَ ژبو دَ ذکر نه مخکښې دا حرف راشی نو زمونږ مقصد ترې دا وی چې دَ لغت مُتعلقه لفظ اصل کښې لۀ هغه ژبې اخستے شوے دے لکه سرمايه (م- فارسی)-

٣ دَ " ش " نه مطلب شريک دے او کومو لفظونو سره چې دَ ژبو دَ ذکر نه اول دا حرف راشی نو زمونږ مقصد ترې دا وی چې دغه لفظونه دَ پښتو او دغو ژبو ترمينځه شريک وی لکه آکا (ش- فارسی)-

۴ ڼ (نوڼ) هغه ځايُ کښې استعمال شوے دے چې پخوا به " نړ " ليکلے شو لکه " وروڼه "-

۵ " ی " يايُ معروف هغه توريو کښې استعماليږی چې اواز يُ راکښلے او لنړ وی لکه " خير، تير، فقير " وغيره- دَ هغه اسمونو اخر ته راځی چې جمع مذکر وی لکه " سړی، تندی " وغيره- دَ فعل حال دَ صيغه واحد غائب پۀ اخر کښې راځی لکه " ځی، کوی "- دَ نسبَت دَ پاره راځی لکه " دوست " نه " دوستی "-

۶ دَ پښتو مخصوصه " ې " هغه توريو کښې ليکلے شوې ده چې مخکښې حرف ترې مکسور يا نيم مکسور وی لکه " سړې اُبۀ ، تورې سترګې " وغيره-

٧ دَ " ۍ " حرف هغه لفظونو کښې ليکلے شوے دے چې اسمونه وی، مؤنث وی او واحد او جمع يُ يو شان وی لکه " ځپلۍ، چپلۍ، کرسۍ " وغيره-

٨ دَ " ے " استعمال پۀ هغه توريو کښې کيږی چې مذکر وی او واحد وی او مخکښې حرف يُ مفتوح وی لکه " سړے، تندے " وغيره-

٩ دَ " ی " دَ مختلفو قسمونو ترتيب پۀ دې ډول دے " ی، ې، ۍ، ے "-

## پېش لفظ

عام مقبولیت لرونکے یو معیاری مستند لُغت دَ یوې ژوندۍ ژبې دَ پاره دومره جوت دے چې زیات تفصیل ته حاجت نهٔ لري- دَ رسم الخط، املا، هجې، تلفظ او دَ گرامر ضروري او بنیادي اصول تر یو مستند معیار رسول دَ یوې ژبې ارتقائي ودې دَ پاره بنیادي حېثیت لري او دا محض دَ یو مُستند لُغت پهٔ ذریعه کېدے شي-

دَ لُغت نویسۍ کار چې څومره اهم دے دومره دَ خپلو مضمراتو لهٔ کبله ډېر گران هم دے ځکه چې هېڅ یو لُغت هُم پهٔ سرسري تحقیق خپله اړانه نهٔ لري بلکې دومره ژور تحقیق غواړي چې پهٔ کارکونکي ورځ او شپه یوه کړي او هُم دغه وجه ده چې دې گران کار ته پهٔ ډېره گرانه چا لیکونکي، محقق غاړه اېښې ده-

پُښتو ژبه ډېره خوره وره ژبه ده- مختلفې لهجې لري- نو دَ داسې ژبې توري راغُنډول او هغې ته لُغوي ترتیب ورکول ځان له یو ډېر گران کار دے-

مونږ دا منو چې زمونږ نه مخکښې دَ پُښتو قدرمنو تر خپله وسه دَ لُغتونو دَ جوړولو کوششونه کړي دي او تر ډېره حده کامیاب دي چې پهٔ دغې کښې دَ مستشرقینو کار هُم دَ ستائنې وړ دے خو دغه لُغتونه دَ حکومتي ضرورتونو لهٔ خوا لاندې جوړ شوي دي کوم چې اوس کمیاب هُم دي او کهٔ څهٔ پهٔ لاس راځي نو دغه لُغتونه هُم دَ پُښتو دَ توریو تشریح پهٔ پُښتو کښې نهٔ لري-

دَ دغه مستشرقینو دَ لُغتونو نه علاوه چې کوم لُغتونه لیکلي شوي وو هغه یا خو نیمگړي دي او یا یې معنې پهٔ پُښتو کښې نشته-

چونکې دَ پُښتو ځنیو مئینانو دَ سکولونو، کالجونو دَ استاذانو او دَ ادب دَ طالبعلمانو دَ مشکلاتو لرې کولو دَ پاره دَ یو ډېر لوئ ژور تحقیق ضرورت محسوس کړو چې دَ هغې پهٔ نتیجه کښې دَ یو جلد یو داسې لُغت جوړ کړے شي چې دَ پُښتو دَ توریو تشریح پهٔ پُښتو کښې لري او هُم دغه وجه وه چې پهٔ کال ۱۹۸۲ء کښې دَ محکمه تعلیم لهٔ خوا دَ " پُښتو ډکشنري

پراجېکټ " دَ ستر محقق، عالم او پوهاند پروفېسر قلندر مومند دَ سرپرستۍ لاندې شروع شو چې دَ مختلفو چاپي او قلمي نسخو نه پکښې استفاده وشوه او دَ پښتو دَ هر ممکنه موندونکي کتاب نه توری راغونډ کړے شو- دغه کار تر کال ۱۹۹۱ء پورې سر ته ورسېدهٔ او لُغت دَ نور کار او چاپ کولو دَ پاره سرحد ټېکسټ بُک بورډ پېښور ته دَ انتهائی کمې عملې سره وسپارلے شو- دلته دَ درې کاله ډېر تېز کار نه پس اوس مونږ دَ دې جوګه یُو چې دَ پښتو دا لُغت خپلو مئینانو او قدردانانو ته وړاندې کړو-

پهٔ دې لُغت کښې چې دَ کومو مفیدو او منفردو اضافو طرف ته خاص توجه ورکړے شوې ده هغه دا دی :

۱- دَ پښتو دَ توریو پهٔ پښتو کښې تشریح-

۲- دَ تلفظ دَ پاره دَ ساده طریقې څرګندونه-

۳- دَ ونو، بُوټو نباتاتی نومونه او دَ څناورو ، مارغانو حېواناتی نومونه، چې تر کومه حده موندے شو ، شاملونه-

۴- دَ ماخذ ذریعې چې چرته یُ ضرورت وهٔ، چې ورته پهٔ لُغت کښې اشاره پهٔ " م " ( مونږ ) او " ش " ( شریک ) شوې ده-

مونږ لهٔ خپله طرفه دا پوره کوشش کړے دے چې الفاظ او معنې دې صحیح وی، خو کهٔ چرې دې کښې څهٔ غلطي وموندلے شي نو دا به زمونږ دَ محنت دَ کمی نه بلکې دَ علم دَ کمی نتیجه وی چې یُ مونږ معافی غواړو- داسې غلطۍ کهٔ دَ کوم لُستونکی تر نظره راشي نو خواست کوؤ چې پهٔ ډېره مینه یُ مونږ ته پهٔ ګُته کړی چې پهٔ راتلونکی اېډیشن کښې یُ اصلاح وُکړے شي- زمونږ دا هُم خواست دے چې دَ مطالعې پهٔ دوران کښې کهٔ لُستونکے محسوس کړی چې یو توری پاتې شوے دے نو پکار دی چې پهٔ مونږ دَ احسان او دَ پښتو سره دَ مینې پهٔ غرض یُ مونږ ته راولیږی- مونږ به یُ دَ هغویٔ دَ شکریې سره پهٔ بل اېډیشن کښې شامل کړو- پهٔ دې اېډیشن کښې به تاسو ته دَ کمپیوټر دَ " سافټ ویئر " دَ مسئلې او دَ کار ختمولو کښې دَ تندی پهٔ وجه دَ لفظونو او معنو لیک یو شان ښکاری- پهٔ دوېم اېډیشن کښې به دَ چاپ دَ نور ښهٔ کولو کوشش کولے شي او دا کمی به لهٔ مخه ووځی-

په اخر کښې مونږ د خپلو محسنانو، لیفټیننټ جنرل فضل حق (مرحوم)، بریګیډیر امیر ګلستان جنجوعه د صوبه سرحد د سابق ګورنرانو او د موجوده ګورنر، ښاغلی میجر جنرل (ریټائرډ) خورشید علی خان، ډېر ممنون یُو چې هغوی دې کار کښې زمونږ مرسته کړې ده- د ګران امتیاز احمد صاحبزاده د هغه زیار هم مننه کوو چې د ایډیشنل چیف سیکرټری (پلاننګ اینډ ډویلپمنټ ډیپارټمنټ) په حېثیت د دې لُغت منصوبه ئ ذهن ته راوستله او بیا ئ ورلره عملی شکل ورکړو او تر اخره ئ د دې سرپرستی وکړه- په دې لړ کښې مونږ ښاغلے محمد اعظم خان هُم د ډېرې شکریې وړ ګڼو چې د سیکرټری تعلیم نه تر چیف سیکرټری عهدې پورې ئ زمونږ سره هر قسم مرسته کړې ده او وخت په وخت ئ زمونږه ګرانی اسانې کړی دی- دغسې د ښاغلی اعجاز رحیم مننه کوو چې هغوی هُم د سیکرټری تعلیم د عهدې نه واخله تر چیف سیکرټری عهدې پورې مونږ د خپلې سرپرستئ د سېوری لاندې ساتلی یُو- لُغت نویسی د یوې ژوندۍ ژبې یو داسې مسلسل او ارتقائی کار وی، چې د کوم لۀ کبله د لُغت نوی ایډیشنونه وخت په وخت ډېر ضروری شی- د ښاغلی اصف شاه، سیکرټری تعلیم صوبه سرحد، لۀ خوا د دې منلی حقیقت د احساس او د هغوی د کوششونو چې د دې کار د پاره د موجوده پښتو ډکشنرۍ سېل له دې مستقل حېثیت ورکړے شی، د زړۀ لۀ تله مننه کوو-

مونږ د پروفیسر مېکنزی، ګوټنګن یونیورسټی، جرمنی (GOTTINGEN UNIVERSITY, GERMANY) د پښتو یو ستر عالم، چې د دې لُغت د پاره ئ د پښتو کمپیوټری " فانټس " او د " سافټ وېئر " بنیادی خدوخال مرتب کړی دی، بې کچه شکرګزار یُو- د عمر فاروق صاحبزاده د مینې او مسلسلې دلچسپۍ ډېره شکریه ادا کوو چې د هغوی د ډېرې حوصله افزایۍ په وجه مونږ دا کار سر ته ورسوۀ-

مونږ دَ ښاغلیو ممتاز اکبر، سابق چیئرمېن، پروفېسر بختیار خان، سابق ممبر ، او محمد یعقوب جان، سیکرټری، ټېکسټ بُک بورډ ، دَ زړهٔ لهٔ اخلاصه شکریه ادا کوو چې مونږ سره یُ وخت پهٔ وخت تعاون کړے دے۔ دَ عبدالرحیم مجذوب، قیوم مروت، اکرام الله گران او سېد محمود ظفر دَ مرستې هُم ممنون یُو۔

ښاغلی سیّد جعفر حیات، چیئرمېن، او پروفېسر محمد امین، ممبر ، سرحد ټېکسټ بُک بورډ ، دَ ډېرې شکرېې وړ ځکه گڼو چې دَ هغوی دَ لُغت دَ تکمیل سره دَ ډېرې دلچسپۍ او دَ بې کچه توجه لهٔ کبله دَ دې لُغت وُړد کار را لنډ شو۔

زمونږ لهٔ خوا به دا یوه لویه کوتاهی وی کهٔ مونږ دا " پېش لفظ " سر ته ورسوو او دَ محمد امجد امین او جهانگیر ذکر وُ نهٔ کړو چې دَ کمپیوټر دَ " سافټ وېئر " دَ مړنتوب او دَ خپل دَ نهٔ ستړی کېدونکی او خنده رویه محنت لهٔ کبله پهٔ کمپیوټر کښې دَ توریو اندراج دَ مقرره وخت دننه وکړو او دَ دې لُغت چاپ یُ ممکن کړو۔ دَ مظهر علی هُم ډېره مننه کوو چې دَ پروف ریډنگ زړهٔ ستړے کار یُ پهٔ ډېر مهارت او روڼ تندی سر ته ورسوهٔ۔

فرید صحرائی
پُښتو ډکشنری سېل
یکم ربیع الاول ۱۴۱۵ھ
۱۰ اگست ۱۹۹۴ء

## منـنـه

لهٔ مودو راسې چې دَ پوهې او څېړنې پهٔ مېدان کښې دَ کوم شی کمے محسوسولے شو هغه دَ پښتو ژبې یک لسانی (UNILINGUAL) لُغت وهٔ- دَ لوئ خدائ احسان دے چې دغه کمے تر ممکنه حده پوره شو او دَ پښتو ژبې دَ کارکونکیو ، طالب علمانو یو زوړ ارمان ورژېدو- زهٔ هیله لرم چې دا لُغت بهٔ لهٔ خپله رویه یو تاریخی او یادګاری پېشکش وی او دَ پښتو ژبې دَ پرمختګ پهٔ سلسله کښې به ډېر مفید ثابت شی- زهٔ دا دَ سرحد ټېکسټ بُک بورډ دَ عملې او پښتو ډکشنری سېل دَ اهلِ کارو دَ پاره ډېر لوئ اعزاز ګڼم چې دَ هغوی پهٔ تعاون سره دا ډېر لوئ او اَهم کار پهٔ ډېر کم وخت کښې ترسره ورسېدهٔ او هغه دفتری کشالې وخت پهٔ وخت اوارې کړے شوې کومې چې هر نوی کار ته پېښېدے شی- زهٔ پهٔ دې لړ کښې دَ مرسته کونکیو ټولو هغه وګړیو شکریه ادا کوم چا چې دَ دې ادارې سره لړ څهٔ هُم تعاون او دَ خپل علمی تړون اظهار کړے دے چې لهٔ مغې کبله مونږ دَ دې جوګه شو چې دا ځلانده لُغت دَ طباعت پهٔ کالی پسوللے کړو- دَ ټولو نه اګاهُو زما پهٔ نزد دَ دې صوبې اعلیٰ انتظامی واکداران ښاغلی امیر ګلستان جنجوعه سابق ګورنر سرحد او مېجر جنرل خورشید علی خان موجوده ګورنر دَ ډېرې ستائنې وړ دی چې دَ هغوی دَ درستې رهنمائی او کوټلو مشورو پهٔ هیله دَ دې لُغت دَ طباعت مرحلې اسانې شوې- کهٔ دَ دوی سرپرستی او دَ قدر وړه لارښودنه نهٔ وے نو یقیناً دَ دې بورډ دَ پاره به دَ یو داسې ګران کار سر ته رسول ناممکن شوی وو-

زهٔ دَ صوبه سرحد دَ وزیرِ اعلیٰ ښاغلی افتاب احمد خان شېرپاؤ هم دَ زړهٔ لهٔ تله مننه کوم او هیله لرم چې دوی به پښتو سره خپله مینه جاری وُساتی او دَ ډکشنری دَ اننده اېډیشنونو دَ پاره به مناسب بندوبست وکړی-

زهٔ دَ سیکرټرېټ دَ ځینو واکدارانو شکریه هُم کوم چې هغوی مونږ پهٔ خپل تعاون ونمانځلو او مونږ سره یٔ پهٔ دې لړ کښې دَ زړهٔ لهٔ کومی هر قسمه لاس امداد وکړو-

دَ دې نه علاوه زما دَ شکریې مستحق زما رفیق کار او دَ بورډ ممبر پروفېسر محمد امین هُم دے چا چې دَ دې لُغت پهٔ سر ته رسولو کښې دَ

بې کچه تندئ نه کار واخستو او هُم دَ دهٔ پهٔ نگرانئ کښې دَ طباعت ټولې مرحلې اسانئ سره تکمیل ته ورسېدې-

پهٔ اخر کښې زهٔ دَ لُغت دَ روح روان پروفېسر قلندر مومند او ښاغلی فرید صحرائی دَ ډېرې خوارئ او دلچسپئ ډېره مننه کوم چې دَ هغوی دَ محنت او پُښتو ژبې سره دَ بې کچه مینې لهٔ کبله یو نوموړے تاریخی کار پهٔ ډېره تندئ سره سر ته ورسېدو-

زما دعا ده چې الله تعالی دې دَ دې نیک کار بدله دغه واړو کسانو ته ورکړی چا چې پهٔ دې کار کړے دے او یا یُ دَ دې سره پهٔ ترلی کشالو اوارولو کښې لاس امداد کړے دے- (امین)-

پروفېسر سیّد جعفر حیات
چیئرمېن سرحد ټېکسټ بک بورډ پېښور

ا:(ا-لف)حرف- دَ پښتو ژبې دَ حروف تهجي وړومبے حرف چې دَ ابجد لهٔ حسابه یٔ قیمت یو دے-

آ:(آ)حرف- پهٔ راکښلی آواز وئیلے شي- دَ درد پهٔ زیاتی- حیرانتیا، افسوس، نوی یا دَ اروړمی پهٔ وخت لهٔ خلې وتونکے آواز- (۲)کله کله لړ ډېر دَ چغې پهٔ شان آواز- (۳)دَ خنو سندرغاړو دَ سُر سمولو دَ پاره آواز- (۴)دَ کونترې یا چرګې دَ رابللو کلمه- (۵)دَ وړو ماشومانو دَ خبرو زده کولو پهٔ وخت دَ وړومبی مرحلې آواز-

آب:(آب)اسم- جمع- مذکر- (۱)اُبهٔ- خوله- اوښې- عرق- (۲)شراب- (۳)عزت- حیا- قدر- (۴)خلق(م- فارسي)-

اَبا:(اَ-با)اسم- واحد- مذکر- (۱)پلار- پلار ته دَ خطاب توری- اباجان- جمع اَباګان-، مؤنث اَبې- (۲)نیکهٔ (۳)مشر- سپین ږیرے (ش- هندي- فارسي)-

اَبابیل:(اَ-با-بیل)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو قسم مارغهٔ چې پهٔ حقله یٔ دا خبره مشهوره ده چې باران غواړي- توتکرکے- توتاګرکے- خرڅوکے- سیتکې- سیتی- (م- عربي)-

اباخېل:(اَ-با-خېل)اسم- جمع- مذکر- دَ پلار لهٔ طرفه خپلوان-

آباد:(آ-باد)صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ وران ضد- ودان (۲)وسېدونکے- (۳)صاحبِ مال و اولاد- (۴)هغه کال چې بارانونه پکښې ډېر وی او فصل ښهٔ وشي (ش- فارسي)-

اَباد:(اَ-باد)صفت- واحد- مذکر وګورئ آباد (ش- فارسي)-

اَبادول:(اَ-با-ده-ول)مصدر متعدي- (۱)وسول- مېشته کول- (۲)جوړول-

اَبادون:(اَ-با-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ اَبادول-

ابادونکے:(اَ-با-ده-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابادونکي- مؤنث ابادونکې- وګورئ اَبادول-

ابادونګ:(اَ-با-ده-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اَبادول-

ابادونه:(اَ-با-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اَبادول-

اباده ابادي:(اَ-با-ده-اَ-با-دي)صفت- وداني- سوکالي- خوشحالي- (دَ اَباده او اَبادي مرکب)- (ش- فارسي)-

ابادي:(اَ-با-دي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کلے- بانډه (۲)دَ سړو شمېر- (۳)ښېرازي- سوکالي (۴)کېه کوڼه- جمع آبادي/اَبادیانې- (ش- فارسي)-

ابادېدل:(اَ-با-دې-دل)مصدر لازم (۱)وسېدل- مېشته کېدل- استوګه اختیارول (۲)جوړېدل- ودانېدل- (۳)ښېرازه کېدل-

ابادېدن:(اَ-با-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ابادېدل-

ابادېدونکے(اَ-با-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابادېدونکي- مؤنث ابادېدونکې- وګورئ ابادېدل-

ابادېدنګ:(اَ-با-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ابادېدل-

ابادېدنه:(اَ-با-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ابادېدل-

ابادېدهٔ:(اَ-با-دې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ابادېدل-

اباسک:(اَ-با-سک)اسم- واحد/ جمع- مذکر- یو قسم بوټے چې مینځ یٔ دَ اَلو پهٔ شان وی-

اباسین:(اَ-با-سین)اسم-واحد- مذکر- وګورئ اباسیند-

اباسیند:(اَ-با-سیند)اسم- واحد- مذکر- دَ سیندونو پلار- دَ پښتنو دَ علاقې یو لوئ سیند چې دَ پښتنو دَ زوړ تاریخ سره ډېر ژور تعلق لری- اباسین-

اَباسي:(اَ-با-سي)اسم- واحد/جمع- مؤنث (۱)اسوېلے- (۲)باسی- خُله بکی- (م- هندي- اباسی)-

اباګني:(اَ-با-ګه-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پلارګنی- دَ جینئ دَ پلار کور- (ش- فارسي)-

ابال:(اَ-بال)اسم- وګورئ وُبال-

ابالغالي:(اَ-بال-غا-لي)اسم صفت- واحد- مذکر وبالي- ابالي- ګرم- جمع ابالغالیان-

اَبالي:(اَ-با-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- وُبالي- ګرم- ابالغالي-

اباڼهٔ:(اَ-با-ڼهٔ)اسم- پربوان-

اباواجداد:(آ-باو-اَج-داد)اسم- جمع- مذکر- پلارونه- دَ پېړی مشران- واحد اَب اَو جَد- (م- عربي)-

اباني:(اَ-با-ني)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- پلار نیکهٔ سره متعلق- (ش- فارسي)-

ابپاشي:(اَب-پا-شي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ پټی، فصل یا باغ اُبه کونه- پټو ته دَ اُبو ورکولو کار- اُبهٔ خور (ش- فارسي)-

ابتدا :(اب-ت-دا)اسم (عربي کښې فعل)- واحد- مؤنث- اول سر- شروع- بنیاد- آغاز- (م- عربي)-

ابتدائی:(اب-ت-دا-اي)اسم صفت (۱)ابتدا سره تعلق لرونکے/ لرونکې- (۲)اولنے-

ابتر :(اَب-تر)اسم صفت- واحد- مذکر (۱)اُوتر- پرېشان- ګډوډ- (۲)میرات- بې خویه- (۳)غریب- خوار- (۴)ناقص- خراب- بې خونده- بې کاره- (کول/کېدل ترکیبي مصدرونه)- (م- عربي)-

ابتری:(اَب-ته-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اُوتری- پرېشاني- (۲)غریبي- خواري- (۳)خرابي- بې خوندي- بېکاري-

ابتل:(اُب-تل)اسم- واحد- مؤنث- ږوب ماکو- ابږوب- جمع ابتلان-

ابتلا :(اب-ت-لا)اسم- واحد- مؤنث- ازمېښت- جمع ابتلاګانې- (م- عربي)-

ابته:(اَ-به-ته)اسم صفت- عبث- حبطه- فضول- بې خایه- بې فائدې- ګنده- خراب- لړلے- پلیت- بې کاره- (م- عربي حبطه)- (کول/کېدل مصدرونه)-

ابج:(اَ-بج)اسم صفت- چې بچ کېدل ترې ممکن نهٔ وی- چې خان ساتل ترې ناممکن وی- مؤنث ابجه- (م- هندي ابچ)-

ابجد :(اَب-جَد)اسم واحد/جمع- مذکر- دَ عربي دَ حروف تهجي ښکاره کونکی اَتهٔ لفظونه- چې پهٔ ابجد- هوز- حطي- کلمن- سعفص- قرشت- ثخذ- ضظغ مشتمل دی او هر توری یٔ خانله عددی قیمت لری- (م- عربي

"ی" (ښی-رل)، "ې"(هې-ره-ول)، "ی"(پیا-لیې)، "ے"(تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

عبرانی- پهٔ عبرانی کښې ثخذ او ضظغ نهٔ وی)-
ابجه:(اَ-بهٔ-جه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ابج مؤنث- وګورئ ابج (م- ھندی)-
اَبچی:(اَب-چی) اسم- واحد- مذکر- (۱)اَبهٔ ورکونکے- فصل ته اُبه ورکونکے- (۲)جمع ابچیان- مؤنث ابچی- جمع مؤنث ابچیانی/اَبچیانې- وسله دار- پهٔ وسله پور (م- ورزمبی معنی کښې پښتو دویمه کښې ھندی)-
ابحاث:(اَب-حاث)اسم- جمع- مذکر- دَ بحث جمع- (۱)کنستنه- (۲)جاج اخستنه- سنجونه- (۳)مباحثه- سوال ځواب- واحد بحث (م- عربی)
آب حیات:(آ-ب-حه-یات)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ ژوند اُبهٔ- ھغه فرضي اُبهٔ چې دَ ھغې پهٔ څښلو عمری ژوند حاصلیږی (م- فارسی)
آب خانه:(آب-خا-نه)اسم-واحد-مؤنث- (۱)غسلخانه (۲)دَ ژرندې لاندې ځایَ- چرته چې څرخ اِېښوے شوے وی- (م- فارسی آب- اُبهٔ- خانه- کور)-
اَبد:(اَ-بَد)اسم- واحد- مذکر- (۱)تل تر تله- نهٔ ختمېدونکے وخت- ھمېشه دَ راتلونکی وخت ھمېشګی- (۲)روزګار-
ابدآ:(اَ-به-دَن)متعلق فعل- ھمېشه- ترابده-ابدا-
ابدا:(اَ-به-دا)متعلق فعل- وګورئ ابدآ-
آبدار:(اَب-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مخور- (۲)ښاغلے- (۳)دَ عزت خاوند (۴)ځلېدونکے- (۵)جوھر لرونکے- (۶)اُبرن- (۷)لوند- (۸)تاند- (۹)غوړ- مؤنث آبداره-
آبدارول:(آب-دَا-ره-وَل)مصدر متعدی- اَبدار جوړول- وګورئ آبدار-
آبدارون:(آب-دا-ره-وَن)حاصل مصدر دَ آبدارول- وګورئ آبدار-
ابدارونکے:(آب-دَا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- آبدار جوړونکے- وګورئ آبدار-
ابدارونګ:(آب-دَا-ره-وَنګ)حاصل مصدر دَ ابدارول- وګورئ اَبدار-
ابدارونه:(آب-دا-ره-وَهٔ-نه)حاصل مصدر دَ ابدارول- وګورئ اَبدار-
ابداره:(آب-دَا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وینځلې غوښه- (۲)دَ ابدار مؤنث- جمع ابدارې-
آبداری:(آب-دا-ری)صفت- دَ مخوریز کېدو حالت (ش- فارسی آب- اُبه دار- لرونکے)-
ابدارېدل:(اَب-دا-رې-دَل)مصدر لازم- آبدار جوړېدل- وګورئ آبدار-
ابدارېدن:(اَب-دَا-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ آبدار-
ابدارېدنګ:(اَب-دَا-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ آبدار-
ابدارېدنه:(اَب-دا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ آبدار-
ابدارېدونکے:(اَب-دا-رې-دُون-کے)-اسم مفعول- واحد- مذکر- ابدار جوړېدونکے- وګورئ آبدار-
ابدارېدهٔ:(اَب-دَا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ آبدار-
ابدال:(اَب-دال)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)بُزرګ یا نېک سړے- (۲)دَ بزرګانو یو خاص ټولے-

آبدان:(آب-دان)اسم- واحد- مذکر- اودان- دَ اُبو ساتلو دَ پاره یو ږول فلزی لوښے- (افغانستان)- جمع ابدانونه- (م- فارسی- آب- اُبه- دان- ظرف)-
ابدان:(اَب-دان)اسم- جمع- مذکر- دَ بدن جمع- جسمُونه- واحد بدن- (م- عربی)-
ابږنړی:(اب-ږن-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ګلی ږنړی- دَ ملکانو یو قسم لوبه-
ابدور:(اَب-دور)اسم صفت- بې ځایه- بې واکه-
ابدی:(اَ-به-دي)صفت- ابد سره متعلق- (م- عربی اَبد)-
ابدیت:(اَ-بَه-دی-یَت)اسم- وګورئ اَبد- (م- عربی اَبد)-
ابږوب:(اَب-ږُوب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اُبتل-
اَبر:(اَ-بر)اسم- واحد- مذکر- وریځ- اُورهٔ- (م- فارسی)-
ابرا:(اب-را)اسم- مؤنث- تېرېدنه- بخښنه- ھفوه-
ابرا:(اب-را)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ابره-
ابرات:(اب-رات)اسم- واحد- مذکر- (۱)برخه- حصه- (۲)لیک- تحریر- تمسک- (۳)اقرارنامه- ضمانت- (۴)برات- دَ سرکار لهٔ لوری دَ پیسو وصولی- سند- (۵)ماجب- ھغه سرکاری سالانه انعام چې قبائېلو لهٔ پاره مقرر وی-
ابرار:(اَب-رار)اسم صفت- (۱)پاک- پاکیزه- (۲)فرض شناس-(۳- اسم)انصاف کونه- (۴)کتنه- (۵)دَ رښتیاؤ مطابق قسم خوړنه- (۶)صحرا کښې سفر کونه- (۷)غالب کېدنه- (م- عربی)-
ابرش:(اَب-رَش)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ سُور رنګ اَس چې سپین والے ھم پکښې وی- چینے اَس- (ش- فارسی)-
ابرص:(اَب-رَص)اسم صفت- برګے- برصی- ھغه سړے چې برص پرې لګېدلے وی- (م- عربی)-
ابرک:(اَب-رَک)اسم- واحد- مذکر- دَ شګې ګل- سپلګه- رنوکے- رنکے- سپینه پوړیزه تیږه- پنی- (م- عربی ابرق)-
ابرو:(اَب-رُو)اسم- (۱)وروځې- (۲)عزت- حیا- شرم- (اخستل/ساتل- مصدرونه ترکیبی)- (م- فارسی)-
آبرو:(آب-رو)اسم- واحد- مذکر- (۱)ورخ- (۲)بغول- (۳)دَ اُبو دَ تېرېدلو موری- (مُرکبّ)-
ابرونی:(اَب-رُو-نی)اسم- واحد- مؤنث-اَبرو- شرم- حیا-
ابره:(اب-ره)اسم- واحد- مؤنث-(۱)دَ زمکې حاصلات- (۲)دَ ھر څیز محصول- (۳)ھغه زمکه چې کال پهٔ کال وار پهٔ وار کرلے شي- (۴)ګټه، سود، فائده- جمع اِبرې-
ابره:(اَب-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ اَستر ضد- (۲)دَ غبرګې کپړې پورتنے مخ- (۳)غلاف- (۴)دَ کپړې یو قسم- جمع اَبرې (ش- فارسی)-
ابره:(اب-ره)اسم- واحد- مؤ:ث- یقین- اعتماد- اعتبار-

أبـره:(أب-ره)اسـم- واحـد- مؤنـث- دَ غر څاړے- تنخرے- توغدرے- (ش- فارسی)-

ابـره:(أب-ره)اسـم- واحِد- مؤنـث- (۱)ستن- (۲)هغه وړوکې کرښه چې په تنقيط کښې دَ جمله معترضه دَ ښئيلو دَ پاره راځي- جمع ابرې-

ابره وره:(اب-ره-وهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه زمکه چې ډېره غله ورکوی- زرخېزه زمکه- لېښتې- زرتکې-

ابری:(أب-ری)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ ديوالونو دَ ګلکارانو دَ لاسه شوې هغه غېر منظّمه ګلکاری چې ډېر رنګونه پکښې شامل وی- (۲)دَ کتابونو وغېره پهٔ جلدُونو کښې استعمالېدونکے نرے کاغذ-

ابری توره:(أب-ری-تُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ تورې يو قسم- جمع ابری ثُورې-

ابـرېښم:(أب-رې-ښم)اسم- واحد- مذکر- دَ ورېښمو دَ چينجی غلاف- کچه ورېښم- دَ ورېښمو مزے- وګورئ ورېښم-

اُبړن:(أب-ړن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- وګورئ ابژن-

أبړی:(أب-ړی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- (۱)اُبو کښې شنه سلېښناکه جالی- (۲)ډېر نرم او خوړين څيز-

آبِ زمزم:(آ-بِ-زم-زم)اسم- مؤنث- دَ زمزمو اُبهٔ- پهٔ مکه معظمه کښې يوه خاصه چينه چې دَ حضرت اسماعيل علېه السلام پهٔ خاطر څرګنده شوې وه-

ابزن:(أب-زن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- وګورئ ابژن-

ابزه:(أب-زه)اسم- واحد- مؤنث- صراحي- کوزه (متروک) جمع أبزې-

ابزے:(أب-زے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بزه- هغه چينجے چې کپړه خوری-

ابژن:(أب-ژن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- اُبلن- چړوبن- چړچوبن- زېم ژن- زولن-

أبس:(أ-بَس)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)فضول- (۲)بېکاره- دَ عبث مفڤن-

ابـس پـنـړی:(ا-بَـس-پَن-ړی)اسـم- واحـد/جمع- مؤنث- دُ ملکانو يوه لوبه- اپس پنړی- پنړا ګلی-

اَبشار:(اَب-شار)اسم- واحد- مذکر- هغه ځایٔ چې هلته لهٔ غرهٔ يا بل وُچت ځایٔ نه اُبهٔ ښکته را غُرځيږی- کړونګه- زاوو- جړوبے- پارچاوے- جمع اَبشارونه-

ابغول:(اب-غه-ول)مصدر متعدی- دَ چا بې شرمی کول او ور ته ستغې خبرې کول- سپکاوے کول-

ابغون:(اب-غه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ابغول-

ابغونکے:(اب-غه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابغونکی- مؤنث ابغونکې- وګورئ ابغول-

ابغونګ:(اب-غه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ابغول-

ابغونه:(اب-غه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ابغول-

ابغوهٔ:(اب-غه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ابغول-

ابغېدل:(اب-غې-دل)مصدر لازم- دَ چا بې شرمی کېدل- سپکاوے کېدل-

ابغېدن:(اب-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ابغېدل-

ابغېدنګ:(اب-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ابغېدل-

ابغېدنه:(اب-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ابغېدل-

ابغېدونکے:(اب-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابغېدونکی- مؤنث ابغېدونکې- وګورئ ابغېدل-

ابغېدهٔ:(اب-غې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ابغېدل-

ابک:(أ-بک)اسم- واحد- مذکر- دَ أبا نه اسم تصغير- دَ مينې تورے-

ابکه:(أ-بهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ پلار ښځه- مور-

آبکير:(آب-کير)اسم- واحد- مذکر- (۱)تالاؤ- هغه ځایٔ چې اُبهٔ پکښې ولاړې وی- (۲)دَ جولاګانو يوه آله چې پهٔ هغې پهٔ غوړېدلې تنسته اُبهٔ چڼکاوُوی-

أبل:(أ-بل)اسم صفت- مذکر- لوڅ- بربنډ- عموماً پښې سره استعمالېږی لکه پښې ابل-

ابل:(ا-بل)اسم صفت- واحد- مذکر- بې وسه- بې طاقته- خوار- کمزورے-

أبلا:(أب-لا)اسم صفت- واحد- مؤنث- نازک اندامه ښځه- (م- ابلا هندی)-

ابلاغ:(اب-لاغ)اسم- پيغام وغېره رسَونه- (م- عربی- بلغ)-

ابـلـق:(أب-لَق)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تور او سپين- (۲)چُغُر- (۳)مُنافق- مؤنث ابلقه- (م- عربی)-

أبـلن:(أب-لن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- اُبهٔ لرُونکے- اُبژن- نمدار- مؤنث ابلنه- خوړين-

ابلنول:(أب-لهٔ-نه-ول)مصدر متعدی- خوړينول- نمداره کول- ابژنول-

ابلنون:(أب-لهٔ-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ اُبلنول-

ابلنونکے:(أب-لهٔ-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابلنونکی- مؤنث ابلونکې- وګورئ اُبلنول-

ابلنونګ:(أب-لهٔ-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ابلنول-

ابلنونه:(أب-لهٔ-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ابلنول-

ابلنېدل:(أب-لهٔ-نې-دل)مصدر لازم- خوړينېدل- نمداره کېدل- ابژنېدل-

ابلنېدن:(أب-لهٔ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اُبلنېدل-

ابلنېدنګ:(أب-لهٔ-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اُبلنېدل-

ابلنېدنه:(أب-لهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اُبلنېدل-

ابلنېدونکے:(أب-لهٔ-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابلنېدونکی- مؤنث ابلنېدونکې- وګورئ اُبلن-

ابلنېدهٔ:(أب-لهٔ-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اُبلنېدل-

ابلوغ:(أب-لوغ)اسم صفت- واحد- مذکر- ځلموټے- بلوغت ته نژدې- مؤنث ابلوغه-

ابلوغېدل:(أب-لو-غې-دل)مصدر لازم- ځلمے کېدل- بالغ کېدل- بالغېدل-

ابلوغېدن:(أب-لو-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ابلوغېدل-

ابلوغېدنګ:(أب-لو-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ابلوغېدل-

ابلوځېدنه:(اَب-لو-ځې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ابلوځېدل-

ابلوځېدونکے:(اَب-لو-ځې-دوَن-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابلوځېدونکی- مؤنث ابلوځېدونکې- وګورئ ابلوځېدل-

ابلوځېدۀ:(اَب-لو-ځې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ابلوځېدل-

ابلیس:(اِب-لیس)اسم- واحد- مذکر- (۱)شېطان- هغه جن چې حضرت آدم علیه السلام ته ئې د سجدې کولو نه انکار کړے وۀ- (۲ صفت)- شرارتی- وران کارے- (م- عربی)-

ابلی:(اَب-لي)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)دارتې خلې کوشے- (۲)کانیزه زمکه- اوی-

ابنائے:(اَب-نا-ئے)اسم- واحد- مؤنث- جغرافیائی اصطلاح کښې د اُبو هغه ځائ چې دوه وچې سره جدا کوی- (م- فارسی)-

ابنوس:(اب-نوس)اسم- واحد جمع- مذکر- د تور رنګ یو عمارتی لرګے او د هغۀ ونه- (م- فارسی- اب- اُبۀ- نوش- ځښل)-

ابو:(اَ-بو)اسم- جمع- مؤنث- د اُبۀ مغیّره شکل-

ابواب:(اَب-واب)اسم- جمع- مذکر- د باب جمع- (۱)دروازې- (۲)د کتاب یا مضمون برخې(م- عربی- باب- دروازه)-

ابوالبشر:(اَب-بل-به-شر)اسم- واحد- مذکر- د انسان پلار- د حضرت آدم علیه السلام کنیت- (م- عربی)-

ابوالقاسم:(اَب-بل-قا-سم)اسم- واحد- مذکر- د قاسم پلار- د رسول کریم صلی الله علیه و سلم کنیت- چې د مشر خوئ پاک نوم ئې قاسم وۀ- (م- عربی)-

ابوبکر:(ا-بو-بکر)اسم- واحد- مذکر- (۱)د رسول کریم صلی الله علیه و سلم وړومبے خلیفه- (۲)یار غار او وړومبے مسلمان- (م- عربی- ابو-بکر)-

آب و تـاب:(آ-بو-تاب)اسم متعلق فعل- پړک پړوک- شان و شوکت- (م- فارسی- آب- پړک- تاب- خلا)-

ابوټلے:(اَ-بو-ټه-لے)اسم صفت- پوره- ټول- بشپړ- د خوراکی څیزونو د پاره استعمالېدونکې کلمه- (افغانستان)-

ابوس:(اَ-بوس)اسم- واحد- مذکر- د توپچی یو قسم وسله- (افغانستان)-

ابو:(ا-بو)اسم- وګورئ اُبۀ-

ابوتتی:(اَ-بو-ته-تي)اسم- واحد جمع- مؤنث- مهی خورک- یوه مرغی چې غوښه ئې ډېره خوندناکه وی-

ابوتراب:(اَ-بو-ت-راب)اسم- واحد- مذکر- د خاورې پلار- د حضرت علی رضی الله تعالٰی عنه کنیت- (م- عربی)-

ابوجهل:(ا-بو-جهل)اسم- واحد- مذکر- د ابوجهل مُغفّن شکل- د عمرو بن هشام کنیت- (۲ صفت)- ضدی او نا منونکے سړے-

ابوحنیفه:(ا-بو-حه-ني-فه)اسم- واحد- مذکر- د حنفی فقهې امام چې امام اعظم ئې لقب دے- (م- عربی)-

آب و دانه:(آب-و-دا-نه)اسم مرکب- اُبۀ خواړۀ- روزی- رزق- (م- فارسی)-

اُبوراوړے:(اُ-بو-را-وۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- مفت پۀ لاس راغلے- ساه لرونکے شے- بې قیمته شے-

اُبوسه:(اُ-بو-سه)اسم صفت- واحد- مؤنث- زیمناکه زمکه- نوژنه زمکه- ښوره زمکه- جبه- جمع اُبوسې-

اُبول:(اُ-به-ول)مصدر متعدی- خړوبول- اُبۀ ورکول-

ابون:(اُ-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ اُبول-

ابونکے:(اُ-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ابونکی- مؤنث ابونکې- وګورئ اُبول-

ابونګ:(اُ-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اُبول-

ابونه:(اُ-به-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اُبول-

ابوړے:(اُ-بو-وۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- هغه کس یا څیز چې اُبوخان سره وړے وی- (۲ اسم)- ابوښے-

ابوهریره:(آ-بو-هو-ري-ره)اسم- واحد- مذکر- د رسول کریم صلی الله علیه و سلم د مشهور صحابی کنیت-

اب و هوا:(ا-بو-هه-وا)اسم مرکب- جمع- مؤنث- موسم- د یو ملک طبعی حالت- (م- فارسی- آب- اُبۀ- هوا- باد)-

ابوښے:(اُب-وي-ښے)اسم- واحد- مذکر- میراب- پانسالی- اُبووړے- د اُبو څوکیدار چې د ناکو خیال ساتی چې د یوې ناکې اُبۀ پۀ بل ورخ کښې لاړې نۀ شی-

ابه:(اُ-به)اسم- واحد- مؤنث- ډیکه- ډرکه- جمع ابې-

ابه ذره(اُ-به-ذ-ره)اسم صفت- وړوکې وړوکې ټوټې- ذره ذره- بسمې بسمې- ریچ مریچ-

اُبه ډبه:(اُ-به-ډ-به)اسم- واحد- مؤنث- سالنډے- د سایو مرض-

اُبۀ:(اُ-بۀ)اسم- جمع- مؤنث- (۱)د هائیډروجن او آکسیجن کیمیائی مُرکب چې دوه حصې پکښې هائیډروجن او یوه حصه آکسیجن وی- (۲)بې رنګه، بې مزې او بې بویه سیال چې د څښلو، وینځلو او د داسې مقصدونو د پاره استعمالیږی- (۲)هر نرے سیال څیز- ابو- اُبو- (ش- فارسی آب)-

ابهام:(اِب-هام)اسم- (۱)بیان یا تحریر کښې عدم وضاحت- (۲)پۀ شاعری کښې د یو صنعت نوم- (م- عربی ابهام)-

ابۀ تـلـه:(اُ-بۀ-تۀ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د اُبو تلـه- (۲)د زمکې د اواروالی د پېژندلو آله- جمع ابه تلې-

ابۀ چیلم:(اُ-بۀ-چې-لم)اسم مرکب- کپ شپ- ناستے پاستے- دمه- مېلمستیا- خاطر تواضع-

ابۀ خور:(اُ-بۀ-خور)اسم- واحد- مذکر- د کر د زمکې اُبۀ کونه- پنه کونه-

ابۀ خوره:(اُ-بۀ-خو-ره)اسم- واحد- مؤنث- توساندہ- توسنده- هغه زمکه چې ډېرې اُبۀ خوری- کومه زمکه چې ډېرې اُبۀ څښی یا راکاږی- ښوره-

ابۀ دانه:(اُ-بۀ-دا-نه)اسم- واحد جمع- مؤنث- د ساتلو شوو مرغیو خوراک څښاک-

ابهٔ کول:(أ-بهٔ-که-وِل)مصدر ترکیبی- أبه ورکول-

ابهٔ برمېدل:(أ-بهٔ-بر-مې-دَل)مصدر ترکیبی- جریان کېدل-

ابهٔ وارے:(أ-بهٔ-وا-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې ابهٔ لری-

ابهٔ ور:(أ-بهٔ-وَر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خړوب- (۲)پنه- (۳)أبهٔ شوے- (۴)بریالے- (۵)مراد ته رسېدلے- (۶)هدف ته رسېدلے- (۷)مطلب ته رسېدلے-

ابی:(أ-بی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ آوئ- (۲)شین رنګ (دیو معنو کښې اسم صفت)-

ابیات:(اب-یات)اسم- جمع- مذکر- دَ بېت جمع- کورونه- خونې- (۲)شعرونه- سندرې بدلې- اشعار- (م- عربی)-

ابیاری:(آب-یا-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ابهٔ خورکونه- فصلونو ته أبهٔ ورکونه- (م- فارسی)-

ابیانه:(أب-یا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ أبو ټېکس-

ابېدل:(أ-بې-دَل)مصدر لازم- أبهٔ کېدل- خړوبېدل- أبهٔ ورکېدل-

أبېدن:(أ-بې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ أبېدل-

أبېدنګ:(أ-بې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ أبېدل-

ابېدنه:(أ-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ أبېدل-

ابېدونکے:(أ-بې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع أبېدونکی- مؤنث أبېدونکې- وګورئ أبېدل-

ابېدهٔ:(أ-بې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ أبېدل-

ابیر:(أ-بیر)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم خوشبویه دارو- (۲)خوشبوئی- (م- عربی- عبیر)-

ابیور:(اب-یور)اسم صفت- واحد- مذکر- تېز تلونکے څاروے- مؤنث ابیوره- جمع ابیورې-

ابیه:(أ-بی-یه)اسم صفت- دَ اَس داسې تګ چې هغه پکښې یو خوا دواړه پښې دَ بل خوا دواړو پښو سره وار په وار وچتوی-

ابی:(أ-بي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مور- مور ته دَ خطاب کلمه- (۲)مشرې ښځې ته دَ درناوې تورے-

ابی توب:(ا-بی-توب)اسم- مورواله-

ابی غاړے:(أ-بی-غا-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ مور لهٔ غاړې- (۲)دَ مور سره مینه کونکے- بې بې غاړے- دَ حقارت کلمه-

ابے:(أ-بے)صفت- واحد- مذکر- أبهٔ را وړونکے-

اپ:(اپ)اسم- وګورئ هپ-

اپ:(اَپ)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ عفو مُفقَن- معاف- مؤنث اپه- (م- عربی- عفوه)-

اپاړی:(اپا-ړي)اسم- بد غړووی- چټی وینا- عبث وینا- بې فائدې خبرې- (ترهات)-

اپاړے:(أ-پا-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- ګډی خر- نادان- ناپوهه-

اپ دپ:(اپ-دپ)اسم- واحد- مذکر- کوشش- منډه تړه-

اپرا:(اپ-را)اسم صفت- (۱)غټ- (۲)مضبوط- (۳)پیړ- (۴)پربړ- (۵- اسم)دَ یو دېو نوم- اپراد-

اپراد:(اَپ-راد)اسم- واحد- مذکر- دَ یو افسانوی دېو نوم چې ځنې لغتونو دَ "اپرا" په نوم اخستے دے-

اپرېشن:(اَپ-رې-شَن)اسم- واحد- مذکر- دَ جراحی عمل- (م- انګریزی اپرېشن)-

اپرېل:(اَپ-رېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ عیسوی کال څلورمه میاشت- (۲)دَ تاش په ځنو لوبو کښې دَ څلورو یا درېو واړو رنګونو دَ یو شان پاڼو مجموعه-

اپره:(اپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ شنې اپړه- دَ شنې پڼړی-

اپره:(اپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اپړه دوپړه- جمع اپړې-

اَپړه دُپړه:(اَپ-ړه-دُپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اپړه دُوپړه-

اپړه دوپړه:(اَپ-ړه-دوپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فضول خبرې- (۲)لافې- (۳)اپړه دُپړه- جمع اپړې دوپړې-

اپریت چپریت:(اَپ-ریت-چپ-ریت)اسم صفت- چیت شوے- چپ-

اپس پڼړی:(أ-پس-پَن-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کلی پُنډه- أبس پڼړی- دَ ماشومانو یوه لوبه-

اپلات:(اَپ-لات)اسم صفت- واحد- مذکر- اپلاتند- اپلت- اپلیت- کنځل مار- پوچ ځُلے- مؤنث اپلاته/اپلاتنه- جمع اپلاتی-

اپلاتند:(اَپ-لاَ-تند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اپلات-

اپلاته:(اَپ-لا-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- کنځل ماره- پوچ ځُلې- جمع اپلاتې-

اپلاتې:(اَپ-لا-تې)اسم- جمع- مؤنث- پُوچه وینا- سپکه خُله خوزَونه- اپلتې-

اپلت:(اَپ-لت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اپلات-

اپلتې:(اَپ-له-تې)اسم- جمع- مؤنث- بدردَ- کنځل- پوچه وینا- سپکه خله خوزونه- اپلتې غپلتې- اپلاتې-

اپلتې غپلتې:(اَپ-له-تې-غپ-له-تې)اسم- جمع- مؤنث- پوچه وینا- ګډې وډې خبرې- سپکې خبرې- بې فائدې خبرې- اپلتې- اپلاتې-

اپلل:(أ-په-لَل)مصدر- وګورئ اپول-

اپلو:(أ-په-لو)اسم اشاره- دَ هغه پلویو شکل- هغه خوا- اخوا- هغې طرف ته- اپله-

اپله:(أ-په-له)اسم اشاره- دَ هغه پله یو شکل- هغې پلوته- هغې طرف ته- هغې مخې ته- هغې خوا ته- هغه اړخ ته- اپلو-

اپلیت:(اَپ-لیت)اسم- وګورئ اپلات-

اپن:(أ-پن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نا تجربه کار- (۲)آواره ګرد-

اپوټ سپوټ:(أ-پوټ-سه-پوټ)اسم صفت- واحد- مذکر- اړولے- پړمخ- مؤنث- اپوټه سپوټه- (ش- پنجابی- پُټها)-

ئ" (ځی-رل)، ي" (هې-ره-ول)، ی" (پیا-لې)، ې" (تن-دېر) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

اپوته:(أ-پو-ته)اسم صفت- اړولے- په بل مخ- پرمخ- (۲)چپه- کلب- سرګردان- خوار- زېلے- (ش- پنجابی- پٹھا)-

اپول:(أ-په-ول)مصدر متعدی- اپلل- مپول- غپول- مپ کول- روغ تېرول-

اپون:(أ-په-ون)حاصل مصدر- وګورئ اپول-

اپونګ:(أ-په-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اپول-

اپونه:(أ-په-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اپول-

اپونکے:(أ-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اپونکی- مؤنث اپونکې- وګورئ اپول-

اپه:(أ-په)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ مپه-

اپه ترپه:(أ-په-تره-په)اسم- واحد- مؤنث- کوشش منډه ترړه- اپه دپه- مپه دپه- جمع اپی ترپې-

اپه دپه:(أ-په-ده-په)اسم- واحد- مؤنث- دوړه دپکه- چل ول- وګورئ اپه ترپه-

اپه دپه:(أ-په-ده-په)اسم صفت- (۱)اتعه دتعه- (۲)ورک- بنخ- پټ-

اپی:(أ-پی)اسم- واحد- مؤنث- کیدړه چې وار ئې راوړے وی- (۲)بروه- جمع اپیانې-

اپیل:(أ-پیل)اسم- واحد- مذکر- ډ وړوکی حاکم ډ فېصلې ډ منسوخولو ډ پاره لوئ حاکم ته درخواست- (م- انګریزی)-

اپیم:(أ-پیم)اسم- جمع- مذکر- یو نشه راوستونکے څیز چې ډ خشخاشو لۀ بوټو حاصلیږی- افیم-

اپیم چی:(أ-پیم-چی)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اپیمی- جمع اپیم چیان-

اپیم خور:(أ-پیم-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- اپیمی- اپیم خوړونکے- اپیم چی- عملی- مؤنث اپیم خوره- جمع اپیم خوارۀ-

اپیمی:(أ-پی-می)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اپیم خور-

اپېدل:(أ-پې-دل)مصدر لازم- (۱)ډ بروې آواز کول- (۲)غپېدل- شور زوږ کول-

اپېدن:(أ-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اپېدل-

اپېدنګ:(أ-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اپېدل-

اپېدنه:(أ-پې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اپېدل-

اپېدونکے:(أ-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اپېدونکی- مؤنث اپېدونکې- وګورئ اپېدل-

اپېدۀ:(أ-پې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ اپېدل-

اپېلل:(أ-پې-لل)مصدر- لواړ تېرول- بنونے تېرول- نغړل-

اپېللے:(أ-پې-لۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اپېللی- مؤنث اپېللې- وګورئ اپېلل-

اپېلن:(أ-پې-لن)حاصل مصدر- وګورئ اپېلل-

اپېلنګ:(أ-پې-لنګ)حاصل مصدر- وګورئ اپېلل-

اپېلنه:(أ-پې-لۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اپېلل-

اپېلونکے:(أ-پې-لون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اپېلونکی- مؤنث اپېلونکې- وګورئ اپېلل-

ات:(ات)مخفّف- ډ ماشومانو په ژبه کښې ډ "ای ستا" مخفّف-

ات:(ات)سابقه- مُرکّبو لفظونو کښې ډ اتۀ معنیٰ ورکونکې سابقه-

ات:(ات)لاحقه- (۱)چې ډ اسم آخر ته وُ لګی نو جمع جوړه شی لکه خواهش نه خواهشات، احتیاج نه احتیاجات، اخبار نه اخبارات- (۲)عربی کښې ډ جمع مؤنث یوه علامه-

أتاک:(أ-تاک)اسم- واحد- مذکر- کمره- خائې- جمع أتاکونه- (فارسی- اطاق)-

اتام:(أ-تام)اسم- واحد- مذکر- خوراک- طعام- (۲)دوړه- اوړۀ- (ش- عربی- طعام- پښتو- اتوم (اوړۀ) هندی- أتا)-

اتانیز:(أ-تا-نیز)اسم- واحد- مذکر- ډ نیمې روپی سکّه- ۵۰ پیسې-

اتبار:(ات-بار)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډ اعتبار مغفّن- وګورئ اعتبار- (۲)ډ خالی او ګل تر مینځه ورځ- اتوار- (م- وړومبی معنیٰ کښې ډ عربی "اعتبار" او دویمه معنیٰ کښې ډ هندی ایت وار- (ایت- نمر- وار- ورځ-)

اتباری:(ات-با-ري)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- وګورئ اعتباری-

ات پریز:(أت-په-ریز)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څیز چې اتۀ پرې لری- ډ اتو اړخونو لرونکے- ات کتیز- ات څنډ-

اتځنډ:(أت-څنډ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ أت پریز-

اتحاد:(ات-ت-حاد)اسم-(۱)یو کېدنه- اتفاق- (۲)هغه موافقت او یو والے چې ډ مدافعت او حفاظت په غرض شوے وی-

اتحادی:(ات-ت-حا-دی)اسم صفت- (۱)اتحاد کونکے- (۲)هغه ملکونه چې دوېم عالمی جنګ کښې جرمنی، اټلی او جاپان ته یو شوی وو-

اتر:(أ-تر)اسم- واحد- مذکر- اندام- توکے- ډ جسم هره یوه برخه- جمع اترونه-

اتر:(أ-تر)تابع مهمل- ډ خبر تابع مهمل- خبردار- اطلاع یافته-

اترک بترک:(أت-رک-بت-رک)اسم صفت- واحد- مذکر- غریب- بې وسیلې- میرات- اوترک- خوار- بې وسه- لغړ- څنډلے- مؤنث اترکه بترکه- جمع مؤنث اترکې بترکې-

اترنګ:(أت-رنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډ یو بوټی نوم چې ډ جامو په رنګولو او دارُو کښې پکاریږی- (۲)نکریزې- (شاعرانه)- نباتاتی نوم ایس کلپیس- ایکی ناټا(ASCLEPIAS-ECHINATA)-

اتروشے:(أت-رو-شے)اسم- واحد- مذکر- انتوشے- انتروشے- نږے- ډ پوزې سره مخصوص یو غیر ارادی حرکت چې هوا ډ پوزې نه را اوځی او یو آواز پېدا کوی-

اتره:(أت-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه لوئ ښانک چې هغې کښې ډ ګانی ګرم شربت اچوی او ځکی پکښې ترې جوړوی- جمع اترې-

"زبر"(غ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-ښې-دۀ)

اتره:(اَت-ره)اسم- واحد- مؤنث- وُنه- قد- تنه- جمع اترې-

اتره:(اِت-رِه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ وجود برنی نیمه حصه- (۲)تاوړی-

اتره:(اِت-رِه)اسم- واحد- مؤنث- تره- پوستکے- پټ- پوټ- پوست- شولنګ- څمرکه- پوټکے- چمړه-

اترې:(ا-تهٔ-رې)تابع مهمل- (۱)دَ خبرې تابع مهمل لکه خبرې اترې- (۲)بې معنې خبرې-

اتش:(آ-تَش)اسم- واحد/جمع- مذکر- اور- هور- (م- فارسی)-

اتش بازی:(آ-تَش-با-زی)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ بارودو دَ لوبو دَ ځيزونو جوړولو او مغو سره دَ لوبو فن- (م- فارسی- اتش- اور- بازی- لوبه)-

اتش بیان:(اَ-تَش-به-یان)اسم صفت- مذکر- لهٔ جوشه ډک بیان کونکے- جذباتی تقریر کونکے- (م- فارسی)-

اتش پرست:(اَ-تَش-په-رَست)اسم- دَ اُور عبادت کونکے- (م- فارسی- اتش- اُور- پرست- عبادت کونکے)-

اتش خانه:(اَ-تَش-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث-اتش کده- دَ اتش پرستو دَ عبادت ځایُ-

اتش دان:(اَ-تَش-دان)اسم- واحد- مذکر- نغرے- دَ اُور بلولو ځایُ- (م-فارسی- اتش- اور- دان- ځایُ)-

اتش نشان:(اَ-تَش-نه-شان)اسم صفت- واحد- مذکر- اور وروونکے- اور شیندیے غر-

اتشک:(اَ-تهٔ-شَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)اُور بَلَک- اور اورکے- (۲)دَ باؤ مرض-

اتش کده:(اَ-تَش-که-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اتش خانه- جمع اتش کدې-

اتشکی:(اَ-تهٔ-شه-کی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اتشک سره تعلق لرونکے- (۲)پهٔ اتشک ناروغه- جمع اتشکیان- (م- فارسی)-

اتشګیر:(اَ-تَش-ګیر)صفت- مذکر- اور اخستونکے مغه مواد چې ژر اور اخلی- (۲)چمټا- (م- فارسی)-

اتشی:(اَ-تهٔ-شي)اسم- واحد- مذکر- (۱)شکوڼ- خارپشت- یو ځناور چې پهٔ بَدن باندې يُ لوئ لوئ ازغی وی- (۲)اور سره تعلق لرونکے- (م- فارسی)-

اتشی ښیښه:(اَ-تهٔ-شی-ښی-ښه)اسم مرکب- واحد- مؤنث- مُحدّبه ښیښه چې دَ نمر رڼا پهٔ ذریعه اور لګوی- جمع اتشی ښیښې (م- فارسی)-

اتشین:(اَ-تهٔ-شین)اسم- واحد- مذکر- (۱)اور سره تعلق لرونکے- دَ اور معنیٰ لرونکی ټول توری دَ فارسی دَ اتش لهٔ مُونده دی- (۲)دوزخ- (م- فارسی)-

اتشی:(اَ-ته-شي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پهٔ ماشومانو راختونکې نری سرې دانې-

اتصال:(ات-ت-صال)اسم- (۱)جختېدنه- سره لګېدنه- یو ځایُ کېدنه- وصلېدنه- سره نښتنه- (۲)اړیکه پیدا کونه- رابطه موندنه-

اتصو:(اَت-صَو)اسم عدد- واحد- مذکر- اتهٔ سوه- ددې معنې زوړ قرائت-

اتفاق:(ات-ت-فاق)اسم- واحد- مذکر- دَ نفاق ضد- یو والے- لاس یوی- اتحاد-

اتفاقاً:(ات-ت-فا-قَن)متعلق فعل- تصارفاً- ناڅاپه-

اتفاقی:(ات-ت-فا-قی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ناڅاپی- (۲)بې ارادې-

اتکړی:(اَت-که-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مغه زنځیر چې دَ مجرمانو لاسونو ته اچولے شي- متکړی- (م-مندی- متھ- لاس- کړی- کړی)-

اتکش:(اَت-کش)اسم- واحد- مذکر- دَ اور تازه کولو سیخ- چمټا- جمع- اتکشونه- (م- فارسی- اتش- اور- کش- راکښل)-

اتکو:(اَ-تهٔ-کو)اسم- واحد- مؤنث-اتکی- اډکو- اډکړه- اډکه- مور یا بلې مشرې ښځې ته دَ مینې درناوی او ناز دَ څرګندونې توری-

اتکی:(اَ-تهٔ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اتکو-

اتګیز:(اَت-ګ-تیز)اسم صفت- مذکر- وګورئ اتګنه/اَت پریز-

ات ګونے:(اَت-ګو-نے)اسم صفت- مغه ځیز چې اتهٔ اړخه لری-

اتل:(اَ-تَل)اسم صفت- غیرت مند- زړهٔ ور پهلوان (افغانستان)-

اتلس:(اَت-لَس)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ښویدونکې او ځلېدونکې کپړه چې ترې جامې او بړستنې جوړیږی- اطلس-

اتلس:(اَ-تِل-لَس)اسم عدد- مذکر- اتهٔ او لس ۱۸-

اتلسم:(اَت-لهٔ-سَم)اسم عدد- مذکر- دَ اتلس دَ مندسې (۱۸)صفتی شکل-

اتلسمه:(ات-له-سه-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ دَ اتلس دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

اتم:(اَ-تَم)اسم عدد- مذکر- دَ اتهٔ (۸)دَ مندسې صفتی شکل-

اتمبار:(اَ-تَم-بار)اسم- جمع- مذکر- مجوم- بیړ باړ- اژدمام- ټېل ماټېل- کنه ګونه-

اتمه:(اَ-تهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۸)دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

اتنه:(اَ-تهٔ-نه)تابع مُهمل- دَ پښتنه تابع مُهمل-

اتنیم:(اَت-نیم)اسم عدد- مذکر- اتهٔ او نیم- دَ نهو نه نیم کم او دَ اتو نه نیم زیات-

اتنیمه:(اَت-نی-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ اتنیم دَ مندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتنیمې-

اتڼ:(اَ-تَڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پښتو قومی ګډا- (۲)شور- جمع اتڼونه-

اتڼ وال:(اَ-تَڼ-وال)اسم- مذکر- اتڼ کښې برخه اخستونکی-

اتڼی:(اَ-تهٔ-ڼی)اسم صفت- دَ اتڼ ماهر-

اتو:(اَ-تو)اسم- واحد- مذکر- استری- دَ اُسپنې یوه آله چې دَ جامو ګنجې پرې لرې کولے شي- (کول مصدر)-

اتوار:(ات-وار)اسم- واحد- مذکر- دَ اتبار ورځ- دَ خالی او ګل (پیر) تر مینځه ورځ- (م-مندی- ایت- نمر- وار- ورځ)-

اتوب:(اَ-توب)اسم- جمع- مذکر-لهٔ اوړو جوړ شوے یو رقیق خوړ مُرکّب- لېټی- بې مزې خوراک- ساده خوراک- (۲)اُړوب- ړوز- (۳)دَ چاړ او مېده اوړو وړې وېشتلې- مرېوړے- (م- اتوم- اوړهٔ)-

اتوړے:(اَ-تو-ړے)اسم- واحد- مذکر- پټی- جمع- اتوړی-

اتوم:(ا-توم)اسم- واحد- مذکر- اوړهٔ-

اتونے:(اَ-تو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وانېوغ- پتونے- (۲ صفت)- وروستنے- وروستے- وروستو پاتې- آخری- (۳)البتی- وړوکے کوېدونکے-

اتویشتم:(اَت-ویش-تم)اسم- مذکر- دَ اَتهٔ ویشت (۲۸)دَ هندسې صفتی شکل- جمع اتویشتمې-

اتویشتمه:(اَت-ویش-تهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث دَ (۲۸) دَ هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتویشمې-

اته:(اَ-ته)اسم- کولاچ- کولاڅ- واز-

اته:(اَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- احاطه- دَ دېوال یا واړ پهٔ ذریعه بیل کړے شوے ځایُ- (م- عربی- احاطه)-

اته:(اَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ لاس دَ مړوند پهٔ دوو هډوکو کښې دَ یو نوم- (۲)اڅه- دَ لاس دَ ګتونه تر ځنګلې فاصله- (۲)دَ لاس پهٔ ذریعه دَ کېږې مېچ- (کول/کېدل- مصدرونه)-

اته حضور:(اَ-ته-حُ-ضور)مُتعلق فعل- دانسته- لهٔ قصده- پهٔ اراده-

اته ور:(ا-ته-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- اوږد لاسے-

اتهٔ:(اَ-تهٔ)اسم عدد- مذکر- لهٔ اُوو (۷)نه یو زیات- لهٔ نهو نه یو کم-

اتهٔ اتیا:(اَ-تهٔ-اَت-یا)اسم عدد- مذکر- اتهٔ او اتیا- لهٔ نوی دوه کم (۸۸)-

اتهٔ اتیایم:(اَ-تهٔ-اَت-یا-یم)اسم عدد- مذکر- دَ (۸۸) دَ هندسې مذکر صفتی شکل- جمع اتهٔ اتیایمی-

اتهٔ اتیایمه:(اَ-تهٔ-اَت-یا-یهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۸۸) دَ هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اته اتیایمې-

اتهٔ اویا:(اَ-تهٔ-اَو-یا)اسم عدد- اتهٔ او اویا- لهٔ اتیاؤ دوه (۲) کم-

اتهٔ اویایم:(اَ-تهٔ-اَو-یا-یم)اسم عدد- مذکر- دَ (۸۷) دَ هندسې مذکر صفتی شکل-

اتهٔ اویایمه:(اَ-تهٔ-اَو-یا-یهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۷۸) هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتهٔ اویایمې-

اتهٔ پنځوس:(اَ-تهٔ-پَن-خوس)اسم عدد- دوه کم شپېتهٔ- یو او اووه پنځوس-

اتهٔ پنځوسم:(اَ-تهٔ-پَن-خو-سم)اسم عدد- مذکر- دَ (۵۸) دَ هندسې مذکر صفتی شکل-

اتهٔ پنځوسمه:(اَ-تهٔ-پَن-خو-سهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۵۸) دَ هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتهٔ پنځوسمې-

اتهٔ څلوېښت:(اَ-تهٔ-څَل-وېښت)اسم عدد- اتهٔ او څلوېښت- دوه کم پنځوس-

اتهٔ څلوېښتم:(اَ-تهٔ-څَل-وېښ-تم)اسم عدد- مذکر- دَ (۴۸) دَ هندسې مذکر صفتی شکل-

اتهٔ څلوېښتمه:(اَ-تهٔ-څَل-وېښ-تهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۴۸) دَ هندسې صفتی شکل- جمع اتهٔ څلوېښتمې-

اتهٔ دېرش:(اَ-تهٔ-دېرش)اسم عدد- اتهٔ او دېرش- دوه کم څلوېښت-

اتهٔ دېرشم:(اَ-تهٔ-دېر-شم)اسم عدد- مذکر- دَ (۳۸) دَ هندسې مذکر صفتی شکل-

اتهٔ دېرشمه:(اَ-تهٔ-دېر-شهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۳۸) دَ هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتهٔ دېرشمې-

اتهٔ شپېتهٔ:(اَ-تهٔ-شپې-تهٔ)اسم عدد- اتهٔ او شپېتهٔ- دوه کم اویا-

اتهٔ شپېتم:(اَ-تهٔ-شپې-تم)اسم عدد- مذکر- دَ (۶۸) دَ هندسې مذکر صفتی شکل-

اتهٔ شپېتمه:(اَ-تهٔ-شپې-تهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۶۸) دَ هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتهٔ شپېتمې-

اتهٔ نوی:(اَ-تهٔ-نهٔ-وی)اسم عدد- مذکر- اتهٔ او نوی- لهٔ سلو دوه کم (۹۸)-

اتهٔ نویایم:(اَ-تهٔ-نو-یا-یم)اسم عدد- مذکر- دَ (۹۸) دَ هندسې مذکر صفتی شکل-

اتهٔ نویایمه:(اَ-تهٔ-نو-یا-یهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۹۸) دَ هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتهٔ نویایمې-

اتهٔ ویشت:(اَ-تهٔ-ویشت)اسم عدد- مذکر- اتهٔ او شل- دوه کم دېرش-

اتهٔ ویشتم:(اَ-تهٔ-ویش-تم)اسم عدد- مذکر- دَ (۲۸) دَ هندسې مُذکر صفتی شکل-

اتهٔ ویشتمه:(اَ-تهٔ-ویش-تهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۲۸) دَ هندسې مُؤنث صفتی شکل- جمع اتهٔ وېشتمې-

اتی:(اَ-تی)اسم- واحد- مذکر- یو مشهور ځنګلی غټ ځناور چې رنګ یُ تور وی- (م- هاتی- هندی)-

اتی:(اَ-تی)اسم- واحد- مذکر- دَ ډب غېږ (پهٔ غنډسکه دَ یو بل ویشتلو) پهٔ لوبه کښې دَ غنډسکې لړ لړه کول چې کېږ لوبغاړے منډه کړی- اتیوان-

اتیا:(اَت-یا)اسم عدد- مذکر- اویا او لس-نوی نه لس کم- څلور شلې-

اتیات:(اَت-یات)اسم- احتیاط- هتیات- (قدیم)-

اتیاتی:(اَت-یا-تی)اسم صفت- واحد- مذکر- احتیاطی- احتیاط کونکے- محتاط- هتیاتی- جمع اتیاتیان-

اتیاونه:(اَت-یا-وهٔ-نه)صفت- لهٔ ازله- لهٔ شروع- لهٔ مخې-

اتیایم:(اَت-یا-یم)صفت- مذکر- دَ اتیا (۸۰) دَ هندسې صفتی شکل-

اتیایمه:(اَت-یا-یهٔ-مه)اسم عدد- مؤنث- دَ (۸۰) دَ هندسې مؤنث صفتی شکل- جمع اتیایمې-

اتیانے:(اَت-یا-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- زورور- معتبر- جمع اتیانی-

اتیوان:(اَ-تی-وان)اسم- واحد- مذکر- دَ هلکانو پهٔ ځنو لوبو عموماً ډب غېږ کښې مخالف لره دَ تېښتې دَ موقعې ورکولو رعایت- عارضی صلح- اتی-

اتیه:(اَ-تیه)اسم- ګانده- راتلونکې-

اټ:(اَټ)اسم- واحد- مذکر- اټی- وړوکے دوکان- دَ کلیو دوکان- جمع اټونه- (م- ھاټ- ھټ- ھټی- ھندی)-

اټاری:(اَ-ټا-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ټاری- دَ قلعه برج- مورچې لرونکے برج- (۲)دَ حفاظت ځائ- حفاظت گاه-

اټاری:(اَ-ټا-ری)اسم-واحد/جمع- مؤنث- دَ یو تبغ نوم-

اټال:(اَ-ټال)اسم صفت- مذکر- ماتل- خنډېدلے- ایسار- نښتے- مؤنث اټاله-

اټالتیا:(اَ-ټال-تیا)اسم- مؤنث- ماتلی- ایسارتیا-

اټالول:(اَ-ټا-لهٔ-وَل)مصدر متعدی- ایسارول- ماتلول- خوړند ساتل- لهٔ کاره ویستل-

اټالون:(اَ-ټا-لهٔ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اټالول-

اټالونکے:(اَ-ټا-لهٔ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اټالونکی- مؤنث اټالونکې- وګورئ اټالول-

اټالونګ:(اَ-ټا-لهٔ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اټالول-

اټالونه:(اَ-ټا-لهٔ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اټالول-

اټالوے:(اَ-ټا-لهٔ-وے)اسم مفعول واحد- مذکر- وګورئ اټالول-

اټاله:(اَ-ټا-له)اسم- (۱)یرغل- حمله- (۲)پرېشانی- (۳)پهٔ څټله دَ مال خرڅونه-

اټاله:(اَ-ټا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دلی- ټوپ- (۲)دَ کور سامان- (۳)دَ بې کاره څیزونو انبار- جمع اټالې-

اټالېدل:(اَ-ټا-لې-دَل)مصدر لازم- ایسارېدل- پاتې کېدل- ماتل کېدل-

اټالېدن:(اَ-ټا-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اټالېدل-

اټالېدنګ:(اَ-ټا-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اټالېدل-

اټالېدنه:(ا-ټا-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اټالېدل-

اټالېدونکے:(اَ-ټا-لې-دون-کے)اسم فاعل /صفت- واحد- مذکر- جمع اټالېدونکی- مؤنث اټالېدونکې- وګورئ اټالېدل-

اټالېدهٔ:(ا-ټا-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اټالېدل-

اټاږ:(اَ-ټاږ)اسم صفت- مذکر- ایسار- تم- ودرېدلے- پهٔ ځائ- ماتل (معطّل)- مؤنث اټاوه-

اټامی:(اَ-ټا-مي)اسم- واحد- مؤنث- خانګو- ګواره-

اټ سټ:(اَټ-سَټ)اسم- مذکر- وګورئ اَټه سټه- (۱)خپلو کښې پهٔ څهٔ خبره اتفاق- (۲)رعایت- (۳)صلاح (کول/کېدل- مصدرونه)-

اټ سټ:(اَټ-سَټ)اسم- ټول ټال- کل واړه- جواری کښې مر څهٔ پهٔ داؤ کونه- دَ وټه سټه ضد-

اټسکے:(اَ-ټَس-کے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ ټوسکه ټوسکه ژړا- جمع اټسکی-

اټسکے:(اَ-ټَس-کے)اسم- واحد- مذکر- انتروشے- نږے- ان ټشے- جمع اټسکی-

اټکل:(اَټ-کَل)اسم- واحد- مذکر- ګومان خیال- تخمینه- چل وَل- اندازه- جمع اټکلونه-

اټکلباز:(اَټ-کل-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- اټکل کوونکے- اټکلی-

اټکلول:(اَټ-که-له-وَل)مصدر متعدی- (۱)اندازه لګول- ګومان کول- خیال کول- تخمینه لګول- (۲)فکر کول-

اټکلون:(اَټ-که-له-وَن)حاصل مصدر - وګورئ اټکلول-

اټکلونکے:(اَټ-که-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اټکلونکی- مؤنث اټکلونکې- وګورئ اټکلول-

اټکلونګ:(اَټ-که-له-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اټکلول-

اټکلونه:(اَټ-که-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اټکلول-

اټکلی:(اَټ-که-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع اټکلیان- وګورئ اټکلباز-

اټکلېدل:(اَټ-که-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)اندازه لګېدل- تخمینه کېدل- ګومان کېدل- (۲)فکر کېدل- کټل کېدل-

اټکلېدن:(اَټ-که-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اټکلېدل-

اټکلېدونکے:(اَټ-که-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اټکلېدونکی- مؤنث اټکلېدونکې- وګورئ اټکلېدل-

اټکلېدنګ:(اَټ-که-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اټکلېدل-

اټکلېدنه:(اَټ-که-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اټکلېدل-

اټکلېدهٔ:(اَټ-که-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اټکلېدل-

اټک مټک:(اَ-ټک-مه-ټک)اسم- واحد- مذکر- ګل صد برګ- ستبر- صدبر- یو زیړ رنګے ګل- نباتاتی نوم- ټیګټس ایریکټا(TEGTUS ERECTA)-

اټکی:(اَټ-کي)صفت/فاعل- وټکی- لوګے راکښونکے- چیلم څښونکے-

اټکی:(اَټ-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لهٔ خُلې یو آواز سره دَ هوا خارجېدنه- (۲) یو مرض- (راتلل/لګېدل مصدرونه)-

اټکی:(اَ-ټه-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ ما ورروستی او دَ مکر وړومبی اتهٔ ورځې- (۲)دَ منی باد-

اټکے:(اَټ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ لوګی دَ تللو لار- چمنی- انګیټی- لوګی خانه- موری- مګ-

اټوخے:(اَ-ټو-خے)اسم- واحد- مذکر- بازار (افغانستان)-

اټوری:(ا-ټو-ری)اسم- واحد- مؤنث- خوږ یا ختلی ھډوکی ته دَ علاج دَ پاره استعمالېدونکې دَ سپنسو اټه-

اټ وسټ:(اَټ-وَ-سَټ)صفت- (۱)مکمل تباه- (۲)سټ کورے- (۳)وران- سټ وټ-

اټه:(اَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- اټېرن شوی تارونه- جمع اټې-

اټه:(اَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱) بوالهوسی- (۲)یو قسم جواری چې پهٔ سپښتو او ھډوکو کیږی-

اټه:(ا-ټه)اسم- واحد- مؤنث- مېده- نرم او مېده اوړهٔ (م- ھندی- اټا)

اټه سټه:(اَ-ټه-سه-ټه)اسم- واحد- مؤنث- اټ سټ (۱)بندوبست- (۲)تنظیم- (۳)برابرېدهٔ- (۴)سرمایه- نوکه شوکه- دَ کور ماته ګوډه- (۵)خامخا-

ئ" (ځی-رَل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لي)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

بې وجې-

اټه کټه:(أ-ټه-که-ټه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- غټ پټ- جمع اټې کټې- (ش- هټا کټا- هندی)-

اټې:(أ-ټې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)په اټېرن د تار جوړې شوې کونجې چې (8) شکل یې اختیار کړے وی (۲)د تارونو یا سپنسو کونجې-

اټی اټی:(أ-ټی-أ-ټی)اسم- وګورئ د اټی دویمه معنی-

اټېران:(أ-ټې-ران)اسم- واحد- مذکر- (۱)کوټک- څوبنه- هغه آله چې د سپنسو اټې پرې جوړوی- (۲)یوه مخصوصه لوبه-

اټېرل:(أ-ټې-رل)مصدر- بدهضمه کېدل- اغېړل- اغېړول-

اټېرلے:(أ-ټې-رڼ-لے)اسم مفعول- جمع اټېرلی- مؤنث اټېرلې- وګورئ اټېرل-

اټېرن:(أ-ټې-رن)اسم صفت- واحد- مذکر- اغېړه- هغه څوک چې خېټه یې خرابه شوې وی-

اټېرن:(أ-ټې-رن)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې د سپنسو اټې پرې جوړوی- وګورئ اټېران-

اټېرنه:(أ-ټې-رڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اټېرل-

اټېکه:(أ-ټې-که)اسم- واحد- مؤنث- د پښې بنګرى یا د ګیټی په ځاې کولو د پاره استعمالېدونکې اټه- جمع اټېکې-

اټې نټې:(أ-ټې-نه-ټې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)عشوه و غمزه- ناز و ادا- قینج مکېز- (۲)کُنج- (۳)اوښې پوښې-

اټی وال:(أ-ټی-وال)اسم صفت- واحد- مذکر- د اټی خاوند- دکاندار- دوکاندار-

اټی:(أ-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وړوکے دُکان- (۲)د تار کونجی- ترنجی- کونځی- (م- هټی- هندی)-

اثاثه:(أ-ثا-ثه)اسم- واحد- مؤنث- د کور سامان- کالی- اسباب- جمع اثاثې-

اثار:(أ-ثار)اسم- جمع- مذکر- د اثر جمع-

اثار قدیمه:(آ-ثا-رې-قه-دی-مه)اسم- جمع- د پخوانی زمانې نښې نښانې- زاړه عمارتونه- (فارسی)-

اثبات:(أث-بات)اسم- زباتونه- ثابتونه- دلیل راوړنه- سپیناوے- سر ته رسونه- (م- عربی)-

اثباتول:(أث-با-ته-وُل)مصدر متعدی- زباتول- سپینول- ثابتول- یو څیز په چا منل-

اثباتون:(أث-با-ته-وُن)حاصل مصدر- وګورئ اثباتول-

اثباتونګ:(أث-با-ته-وُنګ)حاصل مصدر- وګورئ اثباتول-

اثباتونکے:(اث-با-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اثباتونکی- مؤنث اثباتونکې- وګورئ اثباتول-

اثباتونه:(أث-با-ته-وڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اثباتول-

اثباتېدل:(أث-با-تې-دل)مصدر لازم- ثابتېدل- سپینېدل- زباتېدل-

اثباتېدن:(أث-با-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اثباتېدل-

اثباتېدنګ:(أث-با-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اثباتېدل-

اثباتېدنه:(أث-با-تې-دڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اثباتېدل-

اثباتېدونکے:(أث-با-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اثباتېدونکی- مؤنث اثباتېدونکې- وګورئ اثباتېدل-

اثباتېده:(أث-با-تې-دڼ)حاصل مصدر- وګورئ اثباتېدل-

اثر:(أ-ثر)اسم- واحد- مذکر- (۱)نښه- نښانه- تاثیر- نتیجه- (۲)رساله- کښه- کتاب (افغانستان)- جمع آثار- اثرونه- اثرات- (کول/کېدل- مصدرونه)-

اثرناک:(أ-ثر-ناک)صفت/فاعل- واحد- مذکر- اثر کونکے- اثر څرګندونکے- تاثیر کونکے-

اثری:(أ-ثه-ري)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)فائده من- (۲)باتریا- چې مغزو کښې یې خلل وی- ماغزه خرابے- پاګل- بې توکه خبرې کونکے- (۳)اثر لرونکے- (۴) ښکلے- تاثیرناک-

اثنا:(اث-نا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وخت- ترخ- ترڅ- ټاپې- (۲)وقفه- مېنځ- (۳)سیاله-

اثناعشری:(اث-نا-عه-شه-ری)اسم- واحد- مذکر- شیعه- د دولسو امامانو منونکی- جمع اثناعشریان- (م- عربی- اثناْ عشر- دولس)-

اجابت:(ا-جا-بت)اسم- (۱)قبلول- قبولیت- (۲)لوې بول-

اجاره:(ا-جا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د جائیداد فصل وغېره د یو خاص میعاد د پاره د څه رقم په عوض کښې د اخستلو /ورکولو ټېکه- (۲)سود (وزیرستان)- (۳)انحصار (افغانستان)- د یو کار یا کسب د کولو مکمل اختیارات چې بل څوک یې د کولو اجازت نه لری-

اجاره دار:(ا-جا-ره-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- اجاره اخستونکے- ټېکه دار- باړه وال-

اجاره داری:(ا-جا-ره-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- د اجارې لرلو حالت-

اجاړ:(أ-جاړ)اسم صفت- واحد- مذکر- ویجاړ- برباد- غېر آباد- وران شوے-

اجاړول:(أ-جا-ړه-وُل)مصدر متعدی- ورانول- ویجاړول- شاړول- بربادول- تباه کول-

اجاړون:(أ-جا-ړه-وُن)حاصل مصدر- وګورئ أجاړول-

اجاړونکے:(أ-جا-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع أجاړونکی- مؤنث اجاړونکې- وګورئ أجاړول-

اجاړونګ:(أ-جا-ړه-وُنګ)حاصل مصدر- وګورئ أجاړول-

اجاړونه:(أ-جا-ړه-وڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ أجاړول-

اجاړېدل:(أ-جا-ړې-دل)مصدر لازم- ویجاړېدل- ورانېدل- بربادېدل- شاړېدل-

اجاړېدن:(أ-جا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ أجاړېدل-

اجاړېدنګ:(اُ-جا-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اُجاړېدل-

اجاړېدنه:(اُ-جا-ړې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اُجاړېدل-

اجاړېدونکے:(اُ-جا-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اجاړېدونکی- مؤنث اُجاړېدونکې- وګورئ اُجاړېدل-

اجاړېدهٔ:(اُ-جا-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اُجاړېدل-

اجازت:(اِ-جا-زت)اسم- منظوری- دَ حاکم یا مشر لهٔ خوا دَ یو کار پهٔ کولو دَ رضا مندئ اظهار- اذن- اجازه- (م- عربی)-

اجازه:(اِ-جا-زه)اسم- واحد- مؤنث- منظوری- دَ تعویذ یا دَم عهده(اوده) (ورکول/اخستل/کېدل- مصدرونه)-

اجان:(اُ-جان)اسم صفت- واحد- مذکر- ناجانړ- هغه څوک چې دَ څهٔ څیز واقعې وغېره پهٔ حقله څان بې خبره ښکاره کوی- (م- هندی- انجان)-

اجانبې:(اَ-جا-نبې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اجیانی- حاجیانی- اجنه- اجی- هغه ښځه چې حج ئې کړے وی- دَ اُجی مؤنث-

اجائی:(ا-جا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- دَ حمل پهٔ دوران کښې ترشو څیزونو ته دَ میلان کېفیت-

اجباری:(اِج-با-ری)اسم- پهٔ زور- بې خوښې- جبری- (عربی)-

اجتماع: (اِج-تِ-ماع)اسم- واحد- مؤنث- غُنډه- جلسه- ګڼه- یو ځائې کېدنه- (م- عربی)-

اجتماعی:(اِج-تِ-ما-عی)صفت- اجتماع سره متعلق- پهٔ ګډه- پهٔ غُنډه-

اجتناب:(اِج-تِ-ناب)اسم- څان ساتنه- لرې کېدنه- پرهېز- ډډه- (م- عربی)-

اجتهاد:(اِج-تِ-هاد)اسم- کوشش کونه- لټون کونه- سعی کونه- دَ قرآن کریم، سنت، حدیث او اجماع پهٔ رڼا کښې دَ دینی مسئلو دَحل کولو کوشش کونه- (عربی- جهد)-

اجداد:(اَج-داد)اسم- جمع- مذکر- دَ جد جمع- نیکونه- نیکهٔ او دَ نیکهٔ نه پورته پېړی-

اجر:(اَجر) اسم- واحد- مذکر- (۱)عوض- بدل- بارِه- (۲)ثواب-

اجرا:(اِج-را)اسم- (۱)سر ته رسونه- تمامونه- چلونه- پهٔ ځائې کونه- (۲)دَ عدالتی ډګری جاری کېدنه (قانون)-

اجرام:(اَج-رام)اسم- جمع- مذکر- دَ جرم جمع-

اجرت:(اُج-رت)اسم- مزدوری- قیمت- (م- عربی)-

اجرتی:(اُج-رهٔ-تی)اسم- واحد- مذکر- (۱)مزدور- (۲ صفت)- هغه سړے چې پهٔ پیسو قتل کوی-

اجری:(اَج-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لړې-

اجړ:(اَ-جړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې شادوګانې کړوی- (۲)دَ مشرقی پښتونخوا پهٔ غرونو کښې وسېدونکے یو قوم چې مال پنګر ساتی- جمع اجران- مؤنث اجړه-

اجرا:(اَج-را)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ مېجرا-

اجړه:(اَج-ړه)اسم صفت- (۱)کچه- (۲)کنجوت- (۳)بې مخه- بې څټه- (۴)څښے- (۵)چټی- (۶)بوړے-

اجری:(اَج-ړی)اسم صفت- واحد- مذکر- ګډبه- هغه څوک چې رمه پیائی- څرونکے- ګډبون- شپون- اړبه-

اجزا:(اَج-زا)اسم- جمع- مذکر- توکی- حصې- ټکړې- واحد جزو (عربی)-

اجسام:(اَج-سام)اسم- جمع- مذکر- جسمونه- بدنونه- (واحد جسم- عربی)-

اجغے:(اج-غے)اسم- واحد- مذکر- دَ شکونې دَ خاندان یو ځناور- شیشکے- شیزکے-

اجګر:(اَج-ګر)اسم- واحد- مذکر- لوئې مار- اژدها- (م- اژدر)-

اجل:(اَ-جل)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ بل زمکه کرونکے- بخره خور-

اجل:(اَ-جَل)اسم- واحد- مذکر- دَ مرګ نېټه- مرګ- جمع اجلونه- (م- عربی- اجل- نېټه)-

اجلاپ:(اَج-لاپ)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- پاک- سوتره- سپېڅلے- صفا-

اجلاس:(اِج-لاس)اسم- واحد- مذکر- کښېنونه- کښېناستنه- (۲)دَ حاکم دَ مقدماتو فېصله کولو ځائې او وخت- (۳)دربار- ډېره جلسه- جمع اجلاسونه (م- عربی)-

اجلخے:(اَ-جل-خے)اسم- واحد- مذکر- لوبېدنه- تندرکے- رونګه- (۲)ځېنې غوړے- دَ غورو پوسکې شاته ځائې- جمع اجلخی-

اجل ګیاه:(اَ-جل-ګه-یاه)اسم- جمع- مؤنث- ګندېر پاڼې- ګندېر بوټی- یو زهرژن دارُو-

اجماع:(اِج-ماع)اسم- مؤنث- (۱)جمع کېدنه- ټولېدنه- (۲)اتفاق- پهٔ یو خاص وخت کښې دَ اُمت دَ عالمانو پهٔ یوه مسئله را غنډېدنه چې دَ اسلامی قانون څلورم ماخذ دے- (م- عربی)-

اجمال:(اِج-مال)اسم- واحد- مذکر- دَ تفصیل ضد- خلاصه- اختصار- لنډوالے- (عربی)-

اجمالاً:(اِج-ما-لَن)متعلق فعل- پهٔ اجمال سره- پهٔ اختصار سره- پهٔ لنډو-

اجمالی:(اِج-ما-لی)صفت- دَ اجمال سره متعلق- لنډ- مختصر-

اجمیر:(اَج-میر)اسم- واحد- مذکر- دَ یو ګل نُوم-

اجناس:(اَج-ناس)اسم- جمع- مذکر- اشیا- څیزونه- دَ یوهٔ شان ډېر څیزونه- (م- عربی)-

اجنه:(اَ-جهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اجانبې-

اجوت:(اَج-وت)اسم صفت- واحد- مذکر- جخت- یو بل سره پېوست- مضبوط- برابر- یوځائې- مؤنث اجوته-

اجوت والے:(اَج-وت-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- جختوالے- مضبوطوالے- برابروالے-

اجوتول:(اَج-وهٔ-ته-وَل)مصدر متعدی- جختول- یو بل سره پېوست کول- مضبوطول- نژدې کول- یو ځائې کول- برابرول- محکمول-

اجوتونهٔ(اَج-وهٔ-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ اجوتول-

اجوتونکے:(اَج-وهٔ-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اجوتونکی-

ئ' (څې-رل)، ې'(مې-ره-ول)، ئ'(پیا-لې)، ے'(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

مؤنث اجوتونکې- وګورئ اجوتول-

اجوتونګ:(اَج-وۀ-ته-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اجوتول-

اجوتونه:(اَج-وۀ-ته-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اجوتول-

اجوتېدل:(اَج-وۀ-تې-دَل)مصدرِ لازم- جُختېدل- پېوستېدل- يوځايْ کېدل- برابرېدل-

اجوتېدن:(اَج-وۀ-تې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اجوتېدل-

اجوتېدنګ:(اج-وۀ-تې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اجوتېدل-

اجوتېدنه:(اَج-وۀ-تې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اجوتېدل-

اجوتېدونکے:(اَج-وۀ-تې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اجوتېدونکی- مؤنث اجوتېدونکې- وګورئ اجوتېدل-

اجوتېدۀ:(اَج-وۀ-تې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ اجوتېدل-

اجورن:(اَ-جُو-رَن)صفت- مذکر- بيمار غاړے- ستړے ستومانه-

اجوره:(ا-جُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- مزدُوری- باړه- دَ کار مزدوری- دياړی- (م- عربی)-

اجه:(اَ-جه)اسم- واحد- مؤنث- ژوره- جوکه- يو چينجے چې سخا اُبو کښې پائی- خنو مرضونو کښې دَ انسانی وينې څښلو لۀ پاره پکارېږی-

اجی:(اَ-جی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- حاجی- هغه سړے چې حج يْ کړے وی- جمع اجيان-

اجير:(اَ-جير)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)جريب کش- چې زمکه پۀ زنځير مېچ کوی- (۲)کرايه دار- مزدور- باړی- باړه چی- پۀ دياړی کارکونکے- (عربی)-

اجيرن:(اَ-جی-رَن)اسمِ صفت- مذکر- شل- ضعيف- کمزورے- جورن- (ش- هندی- اجيرن)-

اځب:(اځ-به)اسم- واحد- مؤنث- تېښته- فرار- جمع اځبې-

اځبے:(اځ-بے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- تښتېدلے-

اڅی:(اَ-څی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کپړه- ټوکړه- (۲)اڅی- چجه- بانړه- جالکی-

اچاپت:(اُ-چا-پَت)اسم- دُکاندار نه پۀ قرض دَ سودا راوړلو حساب- (م-هندی- اچاپت- هم پۀ دغه معنی کښې)-

اچار:(اَ-چار)اسم- واحد- مذکر- (۱)پۀ سرکه دَ شړشمو تېلو، شملو وغېره کښې محفوظه کړې شوې سبزی- ترکاری يا مېوه- (۲- صفت)لوړه ژوره- کږکاږيره-

اچاری:(اَ-چا-ری)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې اَچار خرڅوی-

اچاوۀ:(اَ-چا-وۀ)فعل- (۱)اچول مصدر نه ماضی استمراری- وګورئ اچول- (۲)انداز-

اچر:(اَ-چر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ارچه- دَ يوې وُنې نامه چې دَ کوټو تيرونه ترې جوړيږی- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ ارچه-

اچرلے:(اَ-چَر-لے)اسم- واحد- مذکر- اُچولے- تندے- تنړه-

اچرنګه:(اَچ-رَنګ-که)اسم- واحد- مؤنث- کوړکوړی- کورکوری- کوکوشتو- نابغه- ببوغه- بابوغی- کوکړی- کوکوشتکه- يوه عامه حلاله مرغۍ چې رنګ يْ خړبخن، شين بخن وی-

اچغنه:(اچ-غه-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ګړې ګاڼی- چغنه-

اچکل:(اَچ-کَل)اسم- واحد- مذکر- بې لمه ګېورے-

اچکی:(اَچ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وُ ګوری وُچکی-

اچ موچ:(اچ-موچ)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)اَپس پَټېی- ګلی پټېی- دَ ملکانو يوه لوبه (دَ اوچ او موچ مرکب)- (۲)اوې جاوې- (۳)اړی اړی-

اچو:(اَ-چو)اسم- واحد- مذکر- رس بری- دَ الوچې پۀ څېر يوه ترشه مېوه او دَ هغې بوټے-

اچو:(اَ-چو)صفت- وګورئ اَخ (وړومبی معنیٰ)-

اچوانی:(اَچ-وا-نی)اسم- جمع- مؤنث- (۱)کاړه- (۲)دَ بال بچ مورله وركېدونې نرمه لېټی (م-هندی)-

اچوپ:(اَ-چوپ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- اَرت-

اچول:(اَ-چه-وَل)مصدر متعدی- اچېيل- (۱)ګوزارول- (۲)اېښول- (۳)بهر ته راوکښل- (۴)کښېنول- (۵)دننه کول- (۶)ماده باندې دَ نَر خېژول- (۷)قے کول- (۸)زيان کول (دَ ماشوم)-

اچون:(اَ-چه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اچول-

اچونکے:(اَ-چه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اچونکی- مؤنث اچونکې- وګورئ اچول-

اچونګ:(اَ-چه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اچول-

اچونه:(اَ-چه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اچول-

اچونے:(اَ-چه-وۀ-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه ماشوم چې دَ نېټې نه وړاندې پېداشي- جمع اچونی- مؤنث اچونه- جمع/مؤنث اچونې-

اچه:(اَ-چه)اسم- واحد- مؤنث- ډيګور- برانګې- دوه شاخه لرګے- دوګور دوه غاښی- دوه غاښے- دوه شاخے- ړوماڼګی-

اچه:(اَ-چه)اسمِ صوت- دَبزې يا وزې دَ شړلو آواز کچې- کرو- کرې-

اچه:(اَ-چه)صفت- صفا- سوتره- پاکيزه (کول/کېدل مصدرونه)- (م- هندی- اچها)-

اچی کول:(اَ-چی-که-وَل)ترکيبی مصدر- سپے پۀ چا پسې کول- سپے توکول- اَچيش کول- کشکالول-

اچېدل:(اَ-چې-دَل)مصدر لازم- غُرځېدل- ګوزارېدل-

اچېدلے:(اَ-چې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع اچېدلی- مؤنث اچېدلې- وګورئ اچېدل-

اچېدن:(اَ-چې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اچېدل-

اچېدنګ:(اَ-چې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اچېدل-

اچېدونکے:(اَ-چې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اچېدونکی- مؤنث اُچېدونکې- وګورئ اچېدل-

زبر"(غ-بۀ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نُو-کا-ره)، زېر"(کِ-تاب)، جزم"(شکوڼ)، "ه"(ژ-ړه)، "ۀ"(ړو-بې-دۀ)

اچېدهٔ:(اَ-چې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ اچېدل-

اچېش:(اَ-چېش)اسمِ صوت- سپی ته دَ حملې او غوا مېښې یا غوایانو ته دَ اُبو څښلو ترغیب- (کول/کېدل مصدرونه)-

اچېیل:(اَ-چې-یل)مصدر/فعل لازم- وګورئ اَچول-

اچۍ:(اَ-چۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ غواګانو یو قسم چې پهٔ قد وړه او دَ پیو مړنۍ وی یعنی پئ ډېر کوی-

اچے:(اَ-چے)اسم- واحد- مذکر- مؤنث اچۍ- وګورئ اچۍ-

اڅکېزه:(اَڅ-کې-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تمبو- خېمه- کېږدی- دَ کوچیانو او نورو کډوالانو تمبو- جمع اڅکېزې- (۲)هغه لرګی چې خېمه یا کېږدۍ پرې باندې ودرېږی-

اڅنېل:(اَڅ-نېل)مصدر- (۱)انډول- (۲)غوره کول- (۳)بُوډېل- (۴)وزن یا سُر برابرول-

اڅنېلے:(اَڅ-نېهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اڅنېلی- مؤنث اڅنېلې- وګورئ اڅنېل-

اڅنېنه:(اَڅ-نېهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اڅنېل-

اڅنېونکے:(اَڅ-نېون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اڅنېونکی- مؤنث اڅنېونکې- وګورئ اڅنېل-

اڅنېهٔ:(اَڅ-نېهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ اڅنېل-

اڅه:(اَ-څه)اسم- واحد- مذکر/مؤنث-(۱) دَ ګډو بزو دَ مخکښېو پښو لاندینے هډوکے (دَ ورون ضد)- (۲)ولے- (۳)مڅه-

اڅه:(ا-څه)اسم صوت- بزه شړنه- دَ بزې دَ شړلو آواز-

اڅۍ:(ا-څۍ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اڅۍ-

احادیث:(اَ-حا-دیث)اسم- جمع- مذکر- خبرې- هغه خبرې چې لهٔ رسولِ کریم صلی الله علیه و سلم نه دَ راویانو پهٔ ذریعه مونږ ته را رسېدلی دی- واحد حدیث-

احاطه:(ا-حا-طه)اسم- واحد- مؤنث- (۱) راګېرونه- (۲)دَ جېل بېله بېله حصه (۳)پهٔ څلورو دېوالونو کښې را ګېر ځایْ- انګڼ- غولے- (۴)بانډه- مامته- (۵)دښمن محاصره کونه- (۶)چاپېرونه-

احباب:(اَح-باب)اسم- جمع- مذکر- ملګری- دوستان- عزیزان- اشنایان- خواږهٔ یاران- زړهٔ ته نږدې دوستان- واحد حبیب- (م- عربی)-

احبار:(اح-بار)اسم- جمع -مذکر-(۱)دَ خبر جمع- دَ یهودیانو عالمان- (۲)دَ زړې عهد نامې یو کتاب- (عربی)-

احتجاج:(اِح-تِ-جاج)اسم- واحد- مذکر- پهٔ سختئ سرَه دَ څهٔ کار یا خبرې نه انکار کونه او دَ هغې خلاف آواز پورته کونه- خفګان ښکاره کونه- (کول/کېدل مصدرونه)- (عربی)-

احتجاجی:(اِح-تِ-جا-جی)صفت- دَ احتجاج سره تعلق لرونکے- وګورئ احتجاج-

احتراز:(اِح-تِ-راز)اسم- واحد- مذکر- ځنګ کونه- ځان ساتنه- ډډه کونه- ځان ژغورنه-

احترام:(اِح-تِ-رام)اسم- واحد- مذکر- تعظیم- مدار کونه- عزّت کونه- (م- عربی)-

احتراماً:(اِح-تِ-را-من)متعلق فعل- دَ احترام پهٔ طور- (م- عربی)-

احتساب:(اِح-تِ-ساب)اسم- مذکر- جاج اخستنه- حساب اخستنه- (م- عربی)-

احتلام:(اِح-تِ-لام)اسم- مذکر- پهٔ خوب کښې اودس اوړېدنه- جامې پلیتېدنه- غُسل فرض کېدنه- (م- عربی)-

احتمال:(اِح-تِ-مال)اسم- مذکر- ګمان- شک شُبه- اُمید- امکان- (عربی)-

احتیاج:(اِح-تِ-یاج)اسم- مذکر- حاجت- ضرورت- غرض- اړه- اړتیا- اتباله- موتازی-

احتیاجی:(اِح-تِ-یا-جی)اسم- حاجت- اړتیا- موتیازی- ضرورت- (م- عربی)-

احتیاط:(اِح-تِ-یاط)اسم- (۱)اتیات- متیات- خیال- فکر- پام- خبردارے- (۲) حفاظت- ځان ساتنه- (۳)دُور اندېشي- وړدپالے- ځان ژغورنه- ډډې ته کېدنه- (۴)ځنګ ته کېدنه (کول/کېدل مصدرونه)- (عربی)-

احتیاطی:(اِح-تِ-یا-طی)اسم صفت- دَ احتیاط سره متعلق- احتیاط سره منسوب-

احد:(اَ-حَد)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱) یو- بې شریکه- (۲)دَ خدایْ پاک نوم- (م- عربی)-

احد:(اُ-حُد)اسم- واحد- مذکر- مدینې سره نږدې هغه غر چرته چې دَ مسلمانانو او قُریشو دوېم جنګ شوے وهٔ-

احرام:(اِح-رام)اسم- پهٔ ځان حرامونه- دَ حج پهٔ ورځو کښې یو څو جائز کارونه پهٔ ځان بندونه- لهٔ مقرور ځایونو نیت تړنه- (م- عربی)-

احساس:(اِح-ساس)اسم- (۱) پهٔ پینځو حواسو کښې لهٔ یو یا زیاتو نه کار اخستلو پهٔ ذریعه څهٔ معلومونه- (۲)دَ څهٔ خبرې اثر کېدنه- (م- عربی)-

احساساتی:(اِح-سا-سا-تی)اسم صفت- (۱)دَ احساساتو لرونکے- (۲)ویښ- (۳) بېدار- (۴)نامعقول-

احساسول:(اِح-سا-سه-وَل)مصدر متعدی- پهٔ پنځو حواسو کښې لهٔ یو یا زیاتو نه کار اخستلو پهٔ ذریعه څهٔ معلومول- (۲)دَ څهٔ خبرې اثر کول-

احساسون:(اِح-سا-سه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ احساسول-

احساسونکے:(اِح-سا-سه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع احساسونکی- مؤنث احساسونکې- وګورئ احساسول-

احساسونګ:(اِح-سا-سه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ احساس-

احساسونه:(اِح-سا-سه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ احساس-

احساسېدل:(اِح-سا-سې-دَل)مصدر لازم- (۱)پهٔ پنځو حواسو کښې لهٔ یو یا زیاتو نه کار اخستلو پهٔ ذریعه څهٔ معلومېدل- (۲)دَ څهٔ خبرې اثر کېدل-

احساسېدن:(اِح-سا-سې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ احساسول-

احساسېدنګ:(اِح-سا-سې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ احساسول-

ئ (ځې-رل)، ې(مې-ره-ول)، ی(پیا-لی)، ے(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

احساسېدونکے:(اح-سا-سې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع احساسېدونکی- مؤنث احساسېدونکې- وګورئ احساسېدل-
احساسېدهٔ:(اح-سا-سې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ احساسول-
احسان:(اح-سان)اسم- مذکر- (۱)ښېګړه- ښېګڼه- نېکی- (۲)شکر- جمع احسانونه- (کول/کېدل- مصدرونه)-
احسان فراموشی:(اح-سان-فَ-را-مو-شي) اسم مرکب- مؤنث- احسان هېرونه- وګورئ احسان-
احسان من:(اح-سان-من)صفت/فاعل- احسان منونکے- وګورئ احسان-
احسان مندی:(اح-سان-مَن-دی)اسم- ښېګړه- مننه- ښهٔ مننه- وګورئ احسان-
احقر:(اح-قر)اسمِ صفت- دَ حقیر اسمِ تفضیل- (۱)ډېر زیات سپک- (۲)دَ انکسار نه دَ ځان لهٔ پاره استعمالېدونکے توری-
احکام:(اح-کام)اسم- جمع- مذکر- قانون- دستور- آئین- روش- رواج- (م- عربی)-
احمد:(اح-مَد)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)ډېر حمد کونکے- (۲)دَ رسول کریم صلی الله علیه و سلم نوم مبارک-
احمر:(اَح-مَر)اسم- سور- سور رنګ- جمع احامر- (م- عربی)-
احمری:(اَح-مه-ری)اسمِ صفت- سور رنګ ته منسوب- (م- عربی)-
احمق:(اح-مَق)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ناپوهه- بېرا- چاړے- بې وقوف- نادان- جمع احمقان-
احمقانه:(اَح-مه-قا-نه)صفت/متعلق فعل- (۱)دَ حماقت نه ډک- (۲)دَ احمق سره منسوب-
احمق توب:(اَح-مَق-توب)اسم- بې عقلی- سادګی- بې وقوفی- نادانی-
احمق والے:(اَح-مَق-وا-لے)اسم- وګورئ احمق توب-
احمقی:(اَح-مه-قي)اسم- وګورئ احمق توب-
احوال:(اَح-وال)اسم- واحد- مذکر- حال- حالت- دَ حال جمع- خو پښتو کښې واحد استعمالېږی- (م- عربی)-
احول:(اَح-وَل)اسم صفت- واحد- مذکر- کاڼے- کاږینګ- چغر- (م- عربی)-
احیا:(اح-یا)اسم- ژوندے کونه- (م- عربی)-
اخ:(اَخ)حرف- (۱)دَ افسوس و ارمان کلمه چې دَ څهٔ اندوهناکې پېښې پهٔ وخت بې اختیاره پهٔ خلهٔ راځی- (۲)کله کله دَ نفرت پهٔ ډول او کله کله دَ خوشحالی او تعجب پهٔ موقع هم ویلے شی- اخاه-
اخ:(اَخ)صفت- (۱)دَ صدمې پهٔ نتیجه کښې بې خوده- مار چیچلے-(۲ اسم)- افسون- منتر- یوه خاصه ټوټه چې ماشومان يُ دَ مرګڼِن مارغهٔ وغیره دَ ژوندی کولو لهٔ پاره کوی-
اخ اخ:(اَخ-اَخ)کلمه دَ ډېر غم یا خوشحالی پهٔ وخت لهٔ خلې وتونکې کلمه-
اخاړ:(اَ-خاړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اخېړ-
اخاړه:(اَ-خا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پوچه- ګروبے- لېو- پلستر- جمع اخاړې- وګورئ اخېړ-

اخاښل:(اَ-خا-ښَل)مصدر- نیول- ګرفتارول-
اخاښی:(اَ-خا-ښي)اسم- واحد- مؤنث- ګرفتاری- نیونه-
اخبار:(اَخ-بار)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)خبرنامه- (۲)دَ اسلامی شرعې پهٔ اصطلاح کښې دَ حضور صلی الله علیه و سلم دَ احادیثو نه مراد دے- (۲)هغه پرچې چې پهٔ هغو کښې دَ مختلفو ځایونو خبرونه لیکلے شی- ورځپاڼه- جمع اخبارونه/اخبارات- واحد خبر-
اخبار والا:(اَخ-بار-وا-لا)صفت- اخبار سره متعلق- اخبار کښې کار کونکے-
اخباری:(اَخ-با-ری)صفت- اخبار سره متعلق-
اخپور:(اَخ-پور)اسم صفت- خور- خپور- وسیع-
اختتام:(اِخ-ت-تام)اسم- خاتمه- پایُ- انجام- آخر-
اختر:(اَخ-تَر)اسم- واحد- مذکر- دَ شوال پهٔ ورومبی او دَ ذی الحج پهٔ لسمه ورځ دَ مسلمانانو دَ خوشحالی جشن چې ورومبے ورکوے او دویم لوی اختر نومېږی- (۲)ستورے- (م- فارسی)-
اختراع:(اِخ-ت-راع)اسم- لهٔ خانه نوے شے پېدا کونه- ایجاد کونه- دروغ جوړونه-
اختری:(اَخ-ته-ری)اسم- دَ قربانی څاروے-
اختصار:(اِخ-ت-صار)اسم- خلاصه کونه- لنډونه-
اختصاص:(اِخ-ت-صاص)اسم- (۱)ربط- وقف- ارتباط- اړه- (۲)صفت- خصوصیت- (۳)بلدتیا- لاس لرنه- (۴)ځنې علمونو کښې خصوصی مهارت- (افغانستان)-
اختلاط:(اِخ-ت-لاط)اسم- (۱)ګډوډ کونه- یو ځایُ کونه- ګډونه- (۲)ګپ شپ- خبرې اترې-
اختلاف:(اِخ-ت-لاف)اسم- (۱)مخالف کېدنه- (۲)بېلوالے- توپیر- دَ اتفاق ضد-
اختلال:(اِخ-ت-لال)اسم- بې نظمی- خرابوالے- ګډوډی- خلل پېدا کېدنه- (م- عربی)-
اخ تو:(اَخ-تُو)اسم صوت- (۱)دَ خراشکی یا دَ بلغم دَ مری نهٔ دَ را بېلولو او توکلو آواز- غاړه تازه کونه- (۲)دَ توکلو آواز- چې دَ نفرت دَ ښکاره کولو دَ پاره استعمالېږی-
اخته:(اَخ-ته)صفت- (۱)لګیا- مصروف- اړم- مکلف- نښتے- مبتلا- (۲)هغه نر څاروے چې تکولے شوے وی- خصی (کول/کېدل مصدرونه)- (دویمه معنی کښې م- فارسی)-
اختیار:(اِخ-ت-یار)اسم- واحد- مذکر- (۱)وَس- طاقت- قابو- خوښه- واک- (۲)دَ اختیارول صفت- وګورئ اختیارول- (م- عربی)-
اختیاردار:(اِخ-ت-یار-دار)صفت- مذکر- وګورئ اختیار من-
اختیارمن:(اِخ-ت-یار-مَن)صفت- مذکر- اختیار لرونکے- دَ اختیار خاوند- اختیار مند-
اختیارمند:(اِخ-ت-یار-مَند)صفت- مذکر- وګورئ اختیار من-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، "زورکے" (شل)، "پېش" (نو-کا-ره)، "زېر" (کِ-تاب)، "جزم" (شکون)، "ه" (زَ-ړه)، "ۀ" (پو-ښې-دهٔ)

اختیارول:(اخ-ت-یا-ره-ول)مصدر متعدی- خوښول- منتخب کول- خپلول- په خپله قبضه کښې راوستل-

اختیارون:(اخ-ت-یا-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ اختیارول-

اختیارونکے:(اخ-ت-یا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اختیارونکی- مؤنث اختیارونکې- وګورئ اختیارول-

اختیارونګ:(اخ-ت-یا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اختیارول-

اختیارونه:(اخ-ت-یا-ره-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اختیارول-

اختیاری:(اخ-ت-یا-ری)صفت- د خوښې- د مرضی- د وس-

اختیارېدل:(اخ-ت-یا-رې-دل)مصدر لازم- خوښېدل- منتخب کېدل- خپلېدل-

اختیارېدن:(اخ-ت-یا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اختیارېدل-

اختیارېدنګ:(اخ-ت-یا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اختیارېدل-

اختیارېدنه:(اخ-ت-یا-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ اختیارېدل-

اختیارېدونکے:(اخ-ت-یا-رې-دون-کے) اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اختیارېدونکی- مؤنث اختیارېدونکې- وګورئ اختیارېدل-

اختیارېده:(اخ-ت-یا-رې-ده)حاصل مصدر- وګورئ اختیارېدل-

اخ ټخ:(اخ-ټخ)اسم- جمع- (۱)وګورئ اخ ټوخ- (۲)طنزاً غاړه تازه کونه- (۳)د غندنې جوګه حرکت- (۴)توان- وس- اړېږ-

اخ ټوخ:(اخ-ټوخ)اسم- واحد- مذکر- ټوخنه- ټوخے کونه- د بېداری له ثبوت د پاره ټوخنه-

اخځ:(أ-خځ)اسم- وګورئ اخذ- (افغانستان) (م- عربی اخذ)-

اخذ:(أ-خذ)اسم- اخستنه- نتیجه ایستنه- نیونه- (عربی)-

اخذول:(اخ-ذه-ول)مصدر متعدی- اخستل- نتیجه ایستل- نیول-

اخذون:(اخ-ذه-ون)حاصل مصدر- وګورئ اخذول-

اخذونکے:(اخ-ذه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اخذونکی- مؤنث اخذونکې- وګورئ اخذول-

اخذونګ:(اخ-ذه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اخذول-

اخذونه:(اخ-ذه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اخذول-

اخر:(أ-خر)اسم صفت- (۱)په نتیجه کښې پاتې- وروستو- (۲)حد- ژی- (۳)قیامت- آخری وخت- (م- عربی)-

اخراج:(اخ-راج)اسم- ایستنه- ویستنه- (۲)د ښار نه شړنه- لرې کونه- (۳) غورځونه- (۴)خرڅ- جمع اخراجات- (م- عربی)-

اخراجول:(اخ-را-جه-ول)مصدر متعدی- خارجول- یستل- ویستل- ایستل-

اخراجون:(اخ-را-جه-ون) حاصل مصدر- وګورئ اخراجول-

اخراجونکے:(اخ-را-جه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اخراجونکی- مؤنث اخراجونکې- وګورئ اخراجول-

اخراجونګ:(اخ-را-جه-ونګ) حاصل مصدر- وګورئ اخراجول-

اخراجونه:(اخ-را-جه-وه-نه) حاصل مصدر- وګورئ اخراجول-

اخراجېدل:(اخ-را-جې-دل)مصدر لازم- خارجېدل- بهر ته تلل-

اخراجېدن:(اخ-را-جې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اخراجېدل-

اخراجېدنګ:(اخ-را-جې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اخراجېدل-

اخراجېدنه:(اخ-را-جې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ اخراجېدل-

اخراجېدونکے:(اخ-را-جې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اخراجېدونکی- مؤنث اخراجېدونکې- وګورئ اخراجېدل-

اخراجېده:(اخ-را-جې-ده)حاصل مصدر- وګورئ اخراجېدل-

آخرت:(آ-خ-رت)اسم- واحد- مذکر- قیامت- هغه دنیا- هغه عالم چې پس له مرګه به پکښې د ښو بدو جزا او سزا ورکولے شي- (م- عربی)-

اخرشے:(اخ-ره-شے)اسم- واحد- مذکر- خراشکے یا بلغم-

اخرئ:(اخ-را)د اخر مؤنث- وروستنی- (م- عربی)-

اخری:(آ-خ-ری)صفت- آخر سره تعلق لرونکے- وګورئ آخر-

اخرین:(آ-خ-رین)اسم صفت- وروستے- وروستینے- آخرینے-

اخرینے:(آ-خ-ری-نے)اسم صفت- جمع اخرینی- وګورئ آخرین-

اخرېدل:(آ-خ-رې-دل)مصدر ترکیبی- وروستے کېدل- ختمېدل-

اخستل:(أ-خس-تل)مصدر- پورته کول- په لاس کښې وچتول- (۲)په قیمت پېرل- قبضه کښې راوستل- (۳)غوره کول- حاصلول- (۴)چوڼ کول- (۵)خرېړل- (۶)په ټېنچې لرې کول-

اخستلے:(أ-خس-ته-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اخستلی- مؤنث اخستلې- وګورئ اخستل-

اخستن:(أ-خس-تن)حاصل مصدر- وګورئ اخستل-

اخستنګ:(أ-خس-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ اخستل-

اخستنه:(أ-خس-ته-نه)حاصل مصدر- وګورئ اخستل-

اخستونکے:(أ-خس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اخستونکی- مؤنث اخستونکې- وګورئ اخستل-

اخسته:(أ-خس-ته)حاصل مصدر- وګورئ اخستل-

اخستے:(أ-خس-تے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اخستی- مؤنث اخستې- وګورئ اخستل-

اخ سخ:(أخ-سخ)کلمه انبساط/اسم- (۱)زړه یخېدنه- (۲)په دښمن د مصیبت په وخت زړه خوشحالېدنه- (۳)د حیرت او افسوس په وخت کښې هم پکارولے شي- (کول مصدر)-

اخښل:(أخ-ښل)مصدر- (۱)اغږل- (۲)خوشتول- (۳) لوندول- (۴)ډېر وهل- (۵)وخښل- (وزیر)-

اخښلے:(أخ-ښه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اخښلی- مؤنث اخښلې- وګورئ اخښل-

اخښلے پخلے:(أخ-ښلے-پخ-لے)اسم- (۱) اوړه اخښنه او روټۍ پخونه- د باورچی خانې یا جارګی یا منډوکی کار- (۲) معامده- خبره پخونه- (کول/کېدل مصدرونه-)

اخښن:(أخ-ښن)حاصل مصدر- وګورئ اخښل-

ی"(خې-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لې)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

اخښنګ:(اَخ-ښنګ)حاصل مصدر- وګورئ اخښل-

اخښنه:(اَخ-ښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اخښل-

اخښنه بخښنه:(اَخ-ښهٔ-نه-بخ-ښهٔ-نه) اسم مرکب- واحد- مؤنث- دَ جدايي پهٔ وخت يو بل ته وړکړې راکړې بخښنه-

اخښے:(اَخ-ښے)اسم- واحد- مذکر- (۱)اوښے- دَ ښځې ورور- (۲)دَ خور خاوند- جمع اخښي/اخښيان-

اخطار:(اَخ-طار)اسم- (۱)ډرونه- ويرونه- ورپادونه- پهٔ غوږ وهنه- (۲) خبر- تهديد- (م- عربي)-

اخکل:(اَخ-کَل)مصدر- وګورئ اخښل-

اخلاص:(اِخ-لاص)اسم- (۱)دَ زړهٔ صفائي- بې غرضه دوستي- (۲)دَ قرآن پاک يو سورت مبارک (قُل هُوَ اللّٰهُ اَحَد)- (م- عربي)-

اخلاص من:(اِخ-لاص-مَن)اسمِ صفت/فاعل- مذکر- اخلاص لرونکے- وګورئ اخلاص- (م- عربي)-

اخلاص مند:(اِخ-لاص-مَند)اسم صفت/فاعل- مذکر- وګورئ اخلاص- (م- عربي)-

اخلاصي:(اِخ-لا-صي)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ زړهٔ روغ- سپين زړے- اخلاص من- سپېڅلے- په زړه صفا- (م- عربي)-

اخلاق:(اَخ-لاق)اسم- (۱)دَ خُلق جمع- ښهٔ خويونه او عادتونه- (۲)سړيتوب- انسانيت-

اخلاقاً:(اَخ-لا-قَن)متعلق فعل- دَ اخلاق لهٔ مخه-

اخلاقي:(اَخ-لا-قي)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ اخلاقو سره متعلق- وګورئ اخلاق-

اخلص مخلص:(اَخ-لص-مُخ-لص)صفت- ټول پهٔ ټول- نهٔ زيات نهٔ کم- ټول ټال- مکمّل-

اخله:(اَخ-له/اَ-خهٔ-له)دَ اخستل مصدر نه امرِ استمراري-

اخله:(اَخ-له)حرف تعجّب- دَ تعجّب کلمه- کله کله اخلے او وخلے هم وئيلے شي- واوا-

اخند:(اَ-خند)اسم- واحد- مذکر- پهٔ سوبرې کښې زرغنيدونکے يو نازک شين بوټے- نباتاتي نوم لائي سي ميکيانو موبريه (LICIMACYANO MAWARIA)-

اخنک:(اَخ-نک)اسم- جمع- مذکر- دَ ملخوزو پهٔ شان يو ساګ- دَ شپيشتو ساګ- پيشترے ساګ- پشتره- شپيشتکه- ششتره- پيچلره- نباتاتي نوم ميډي کاګوډينټي کوليټا(MADICAGODENTI COLATA)-

اخوا:(اَ-خوا)اسم اشاره- دَ هغه خوا مخفّف- پهٔ هغه لور- هغه پلو-

اخوا دېخوا:(اَ-خوا-دې-خوا)متعلق فعل- اپله دې پله- هغه خوا دغه خوا- هغه دغه- اغه دغه-

اخوانے:(اَ-خوا-نے)صفت- اخوا سره متعلق- جمع اخواني-

اخوت:(اُ-خو-وت)اسم- وروروَلي- (عربي)-

اخ و ټوخ:(اَ-خو-ټوخ) اسم صوت- مذکر- (۱)غاړه تازه کونه- ټوخے کونه- ټوخېدنه- (۲)دَ خپلې موجودګۍ اظهار کونه- وګورئ اَخ ټخ-

اخ و ېب:(اَ-خو-ېب)اسم- مذکر- قهر- غصه- دبکه- جګړه- وهنه ټکونه-

اخور:(اَ-خور)اسم- واحد- مذکر- دَ څاروو دَ ګياه خوراک دَ پاره جوړ کړے شوے ځاے- جمع اخورونه- (ش- فارسي اخور)-

اخون:(اَ-خون)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ جماعت اُستاذ- معلم- (۲)مولا- (۳)بادي شاعر- وګورئ اخوند-

اخوند:(اَ-خُوند)اسم صفت- واحد- مذکر- اخون- (۱)ښهٔ سړے- (۲)اُستاذ- (۳)هغه کَس چې پلار نيکهٔ ئې عالمان وی- اخونزاده هم ورته وئيلے شي- (۴)دَم ګر- دَم اچونکے- هغه سړے چې پهٔ دَم دَ مرض علاج کوی- (۵)بادي شاعر-

اخون زاده:(اَ-خون-زا-ده)اسم- دَ استاذ ځوئ- جمع اخون زادګان-

اخه:(اَ-خه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ دېوال کښې وړوکے تاخ چې ډېوه پکښې ايښوے شي- جمع اخې-

اخه ټخه:(اَ-خه-ټُ-خه)اسم صوت- (۱)اخ و ټوخ- (۲)ګپ شپ- خبرې اترې-

اخې:(اَ-خې)اسم صفت- واحد- مذکر- تکړه- پياوړے- نر- توروزن- (۲)نيکو کار- (۳- اسم)ورور-

اخېر:(اَ-خېر)اسم صفت- وروستے- انتهائي- (۲)ټول- (۳)نژدې- (۴)آخر ته- آخېرنے- آخر سره متعلق- (م- عربي)-

اخېړ:(اَ-خېړ)اسم- واحد- مذکر- لېو- خاړه- لېېړ- وګورئ اخاړه-

اخېړګر:(اَ-خېړ-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- لېو کونکے- اخېړمار-

اخېړل:(اَ-خې-ړَل)مصدرِ متعدی- خاړه کېدل- خاړه کول- لېو ورکول-

اخېړلے:(اَ-خې-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اخېړلي- مؤنث اخېړلې- وګورئ اخېړل-

اخېړمار:(اَ-خېړ-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع اخېړماران- مؤنث اخېړماره- جمع مؤنث اخېړمارې- وګورئ اخېړګر-

اخېړن:(اَ-خې-ړَن)حاصل مصدر- وګورئ اخېړل-

اخېړنګ:(اَ-خې-ړَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اخېړل-

اخېړنه:(اَ-خې-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اخېړل-

اخېړول:(اَ-خې-ړه-وَل)مصدر/فعل متعدی- خاړه کول- لېوول-

اخېړون:(اَ-خې-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اخېړول-

اخېړونکے:(اَ-خې-ړون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- جمع اخېړونکي- مؤنث اخېړونکې- وګورئ اخېړل-

اخېړونکے:(اَ-خې-ړه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اخېړونکي- مؤنث اخېړونکې- وګورئ اخېړول-

اخېړونګ:(اَ-خې-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اخېړول-

اخېړونه:(اَ-خې-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اخېړول-

اخېړهٔ:(اَ-خې-ړهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اخېړل-

اخېستل:(اَ-خېس-تَل)مصدر- وګورئ اخستل-

اخیستل ورکول:(اَ-خېس-تَل-وَر-کَه-وَل)مصدر- (۱)ورکړه را کړه کول- لېن دېن کول- (۲)یو بل سره لاس کول- امداد کول-

اخے کول:(اَ-خے-کَه-وَل)مصدر ترکیبی- اُوښ کښېنول- اوښ ځوکول-

ادا:(اَ-دا)اسم- واحد- مؤنث- ناز و ادا- قېنج- مکېز- جمع اداګانې- (م-فارسی)-

اداب:(اَ-داب)اسم- جمع- مذکر- دَ ادب جمع-

ادات:(اَ-دات)اسم- واحد/جمع- (۱)کالی- اوزار- (۲)حروف- (م- عربی)-

ادارت:(اِ-دا-رت)اسم- واحد- مذکر- د اخبار یا رسالې ایډیټری-

ادارتی:(اِ-دا-ره-تی)اسم- واحد- مذکر- دَ ادارت سره متعلق-

اداره:(اِ-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دفتر- (۲)کار کونکے ټولے- (۳)دفتری کار چلونه- (۴)څانګه- شعبه- (افغانستان) جمع ادارې-

اداری:(اِ-دا-ری)اسم- واحد- مذکر- دَ ادارې سره تعلق لرُونکے- وګورئ اداره-

اداریه:(اِ-دا-ری-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اخبار یا رسالې سر مقاله چې دَ ایډیټر لهٔ خوا ګښلے شی-

اداړه:(اِ-دا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کاریز دَ کوی دَ خُلې اُرت والے- داړه-

اداکار:(اَ-دا-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ډرامې، تمثیل کارکونکے- ایکټر- جمع اداکاران- مؤنث اداکاره- جمع مؤنث اداکارانې- (۲- صفت)مکرژن-

اداکاری:(اَ-دا-کا-ری)اسم- فلم یا ډرامه کښې دَ کار کولو فن-

ادامول:(اَ-دا-مه-وَل)مصدر متعدی- سېکنول- پوره کول- ګېډه مړول- پهٔ خپل کور پوره کول-

ادامون:(اَ-دا-مه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ادامول-

ادامونکے:(اَ-دا-مه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ادامونکی- مؤنث ادامونکې- وګورئ ادامول-

ادامونګ:(اَ-دا-مه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ادامول-

ادامونه:(اَ-دا-مه-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ادامول-

ادامېدل:(اَ-دا-مې-دَل)مصدر لازم- (۱)سېکنېدل- پوره کېدل- پهٔ ګېډه مړېدل- پهٔ خپل کور پوره کېدل- (۲)پهٔ کچه ګېندو یا ټکونو نېغېدل- وُدرېدل-

ادامېدن:(اَ-دا-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ادامېدل-

ادامېدنګ:(اَ-دا-مې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ادامېدل-

ادامېدنه:(اَ-دا-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ادامېدل-

ادامېدونکے:(اَ-دا-مې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ادامېدونکی- مؤنث ادامېدونکې- وګورئ ادامېدل-

ادامېدهٔ:(اَ-دا-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ادامېدل-

ادانت:(اَ-دا-نت)اسم- لوبو کښې داسې طرفدار جوړېدنه یا جانبداری کونه چې څهٔ فائده یا ګټه کښې برخه ورته ورکولے شی-

ادب:(اَ-دَب)اسم- واحد- مذکر- (۱)حیاٴ- پرده- (۲)تربیت- پالنه- جمع ادبُونه-

ادب:(اَ-دَب)اسم- واحد- مذکر- (۱)تهذیب- (۲)سلیقه- (۳)زده کړه- (۴)نظم و نثر- (۵)احترام- (۶)دَ مشرانو د درجې خیال ساتنه- (۷)دَ زنانوُ د کښېناستو ځایُ (وزیر)- دَ یو معنو کښې یُ جمع اَدبینه- نورو ځایونو کښې جمع ادبونه-

ادبناک:(اَ-دَب-ناک)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- ادب کونکے- دَ بل عزت یا خیال ساتونکے- لحاظ داره- تمیز داره- مؤنث ادبناکه- جمع مؤنث ادبناکې-

ادبی:(اَ-دَ-بی)اسم صفت- واحد- مذکر- نظم و نثر سره تعلق لرونکے-

ادبیات:(اَ-دَ-بی-یات)اسم- جمع- مذکر-(۱)دَ اَدب علم- (۲)لیکلی شوی کتابونه- (۳)دَ ادبی جمع-

ادر:(اَ-دَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)خُودداری- کناره کشی- (۲)کرکه- نفرت- لهٔ خلقو پرهېز-

ادراک:(اِد-راک)اسم- مذکر- پوهه- قابلیت- فهم- پوهېدنه- درک کونه- حسونه-

ادرک:(اَد-رَک)اسم- واحد- مذکر- کچه سُنډ- یوه جرړه چې ځنې پخکړېو او دارو کښې پکاریږی- نباتاتی نوم امونم زنزیبار-

ادرم:(اَد-رم)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اړی مار اَس- (۲- اسم)اثر- تاثیر- (۳)خل- دَ اَس دَ زین لمځے-

ادره:(اُد-ره)اسم- واحد- مؤنث- خټ باد- دَ خایو یو مرض- جمع اُدرې-

ادس:(اَ-دَس)اسم- مذکر- کامبله- خزوه- پهٔ غرهٔ کښې پېدا کېدونکے یو بوټے چې دَ خېټې دَ چینجو دَ بیمارئ دَ پاره پکاریږی- نباتاتی نوم امونم زنزیباد-

ادغام:(اِد-غام)اسم- دَ یو جنس دوه توری پهٔ خپلو کښې یو ځایُ کونه- (۲)پهٔ علم بیان کښې دَ یو صنعت نوم- (۳)تېرونه- نغړنه- نغړدنه-

ادک:(اَ-دَک)اسم- واحد- مذکر- دَ کاڼی یا ټیکری پیټو- موسی- مغه ګرد ټیکرے چې چیندرو پرې کولے شی- اړک-

ادکو:(اَ-دهٔ-کو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ادکه-

ادکه:(اَ-دهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ادکی- ادکو- (۱)دَ ادې تصغیر- (۲)مور ته دَ خطاب تورے- جمع اَدکې-

ادکی:(اَ-دهٔ-کی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ادکه- جمع اَدکی-

ادل بدل:(اَ-دَل-بَه-دَل)اسم- مذکر- ادله بدله- (۱)بې نظمه- بې قاعدی- ګډوډ- (۲)دَ څیزونو خپلو کښې یو تر بله تبادله- ورکړه راکړه- دَ یو څیز پهٔ عوض بل څیز اخستنه- (۳)دَ نرانو تر مینځه جنسی تبادله-

ادله بدله:(اَد-له-بَد-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ادل بدل-

ادلی بدلی:(اَد-لی-بَد-لی)اسم- دَ نرانو تر مینځه جنستی تبادله-

ادم:(آ-دَم)اسم- واحد- مذکر- دَ آدم خویُ- بنیادم-

ادم خور:(آ-دَم-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- سړی خور- وحشی-

ئ (ځی-رل)، ې(مې-ره-وَل)، ۍ(پیا-لۍ)، ے(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

جمع آدم خوارۀ- (مرکّب- م- عربی)-

ادم ذات:(اَ-دَم-ذات)اسم- واحد- مذکر- دَ ادم لۀ ذاته- بنیادم- انسان- ادم زاد-

ادم زاد:(اَ-دَم-زاد)اسم- وګورئ ادم ذات- (مرکّب- م- عربی)-

ادم صورت:(اَ-دَم-صُو-رَت)اسم صفت- مذکر- اَدم شکله- دَ بنیادم پۀ شکل-

ادمے:(اَ-ده-مے)اسمِ تصغیر- دَ ادم اسمِ تصغیر- بنیادم-

ادمے:(اَ-دَ-مے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ وړې سوخی لرونکے سړے- (۲)بادامے-

ادمیت:(اَد-می-یَت)اسم صفت- انسانیت- سړیتوب

ادنٰی:(اَد-نا)اسمِ صفت- سپک- ټیټ- دَ اعلٰی ضد- لږ- کم- بې ارزښته- دَ کمې درجې- لاندینے- پاسو-

ادنا:(اَد-نا)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- (۱)بې مثاله- (۲)چې مقابله ئې نۀ شی کېدے-

ادنٰے:(اَد-نا)صفت- لاندینے- دَ اعلٰی ضد- دَ کمې درجې کمینه- پاسو- وګورئ ادنٰی-

ادوار:(اَد-وار)اسم- جمع- مذکر- دورونه- دَ دور جمع- (م- عربی)-

ادوبدو:(اَ-دَو-به-دُو)اسمِ صفت- واحد- مذکر/مؤنث- ټنډ- پړسېدلے- پړپړ- بوګه بوګه غټ- اَړوبړو- دَ زمرڅن چینجې وغېره دَ چیچلو پۀ نتیجه کښې پړسېدلے- اوپره پړسېدلے- اده باده-

ادوتر:(اَ-دُو-تر)اسم- (۱)یوه کپړه- (۲)نازیاته او قیمتی څیز- (اسم صفت)-

اَدوړے:(اَ-دو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوا یا مېښې پخه رنګ شوې څرمن- بوزینه- پخه څرمن- جمع ادوړی-

ادوس:(اَ-دوس)اسم صفت- واحد- مذکر- کم دلیله- کم نظره-

ادوم:(اَ-دُوم)اسم- واحد- مذکر- ورون- دَ زنګون نه تر نغمانې (غمانې) پورې دَ پښې حصه- پتون- رون-

ادون:(اَ-دُون)اسم صفت- سپک- کمینه- سپوټک- جمع ادونان- (م- فارسی دون)-

ادوے:(اَد-وے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بېل- جُدا- مؤنث ادوې- جمع ادوی-

ادویه:(اَد-وی-یه)اسم- جمع- مؤنث- داروګان- واحد دارو- (عربی)-

اده باده:(اَ-ده-با-ده)اسم صفت- وګورئ اَدوبدو-

اده باده:(اَ-ده-با-ده)اسم- لاده باده- زور او طاقت- قوّت- (مرکّب)-

ادیب:(اُ-دیب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)اُستاذ- (۲)دَ ادب خالق- جمع ادیبان- مؤنث ادیبه- جمع مؤنث ادیبانې- (م- عربی)-

ادیبانه:(اَ-دی-با-نه)متعلق فعل- دَ ادیب سره متعلق- ادبی-

ادیره:(اَ-دی-ره)اسم- واحد- مؤنث- هدیره- مقبره- قبرستان- مړیستون- جمع ادیرې- (م- عربی- خطیره)-

ادینه:(ا-دی-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زیارت ورځ- (۲)دَ جمعې ورځ- (م- فارسی)-

ادي:(اَ-دي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پلار یا دَ مور مور- نیا- (۲)بوډۍ ښځې ته دَ خطاب تورے- (۳)مور ته دَ غر کولو کلمه-

ادي ابا:(اَ-دي-اَ-با)اسم مرکّب- مور پلار- اَدي بابا- (۲)نیا نیکۀ-

ادېکار:(اَ-دې-ګار)اسم صفت- واحد- مذکر- کسب ګر-

ادېکاری:(اَ-دې-ګا-ری)اسم- مؤنث- کسب- پېشه-

ادېله:(اَ-دې-له)اسم- واحد- مؤنث- ادېله وال- (۱)نیمه پېسه- دَ تېرې زمانې یوه معمولی سکه- (۲)دَ تېرې زمانې نیمه روپۍ- اتانیز(مروت)- (م- هندی- دهیلا)-

ادېله وال:(اَ-دې-له-وال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ادېله-

ادېلی:(اَ-دې-لی)اسم- د شېخ ملّی دَ وېش مطابق دَ زمکې دَ تقسیم یوه برخه چې دَ نیمې روپۍ یا نیمې پچې برابر قیمت لری-

ادېوے:(اَ-دې-وے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)یوز زرے- چې څوک ئې نۀ وی- یواځې- (۲)پردے- جمع ادېوی- مؤنث ادېوی-

ادی:(اَ-دی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اډی باډی- کلی سره نژدې وړوکے پټے- (۲)دَ زمکو تقسیم- (۳)ریښکی-

اډ:(اَډ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هډ- غټ هډوکے- (۲)دَ پلار لۀ خوا خپلولی- (۳)اصل- نسل- پښه- جمع اډونه-

اډاله:(اَ-ډا-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ کاریز هغه کومے چې خُلۀ ئې ورانه او ارته وی- سپرغه- ټکه-

اډانه:(اَ-ډا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چت یا دېوال ته دَ اړم لګولو دَ پاره استعمالېدونکې ستن- (۲)تکیه- (۳)اعتماد- (۴)وسې، اړکی، ګودرې، برړونه، ویشې، بنجنې وغېره چې کوټه پرې پټیږی- (افغانستان)-

اډاونه:(اَ-ډاو-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زدانی رغاونه- (۲)چوکاټ- (۲)قالب-

اډرقے:(اَډ-ره-قے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خوړلو ښځلو نه پس لۀ کُومی نه دَ خلې پۀ طرف دَ آواز سره باد وتنه- اوړمے- اَړوے- اړرمے- جمع اډرقی-

اډګډ:(اَډ-ګډ)اسم- جمع- مذکر- هر اډوکے لرُونکے اندام-

اډل:(اَ-ډل)اسم- پۀ غوایانو ختې اخښنه- پۀ ختو غوایان ګرځونه-

اډماتے:(اَډ-ما-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ هډماتے-

اُډمار:(اَډ-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- کبرژن- غره ناک- خان خوښوونکے- مغرور- متکبره-

اُډنی:(اَډ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مخ پټونے- وړوکے څادر- چکلے- وړپټکے- نقاب- څکالے- سپوټکے- سپوټے- (م- هندی- اوړمنی)-

اډو:(اَ-ډو)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ هډو-

اډوبډو:(اَ-ډو-به-ډو)اسم صفت- وګورئ اَدوبدو-

اډوتر:(اَ-ډو-تر)اسم- واحد- مذکر- اَړه تیره- بندوست- انتظام-

اډورے:(اَ-ډو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- تیټے- پسته قد- جمع/مؤنث اډوری- جمع اډوری-

اړوړے:(اَ-ړو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اُدوړے- جمع اړوړې-

اړوکے:(اَ-ړو-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ هړ/ هړوکے-

اړه:(اَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ټانګو او موټرو لارو وغيره دَ درولو خائے- (۲)دَ ترکاڼ دَ رينديٍ (رندي) لاندې دَ کار تخته- (۳)دَ دمې خائے- (۴)دَ بدکارئ خائے- (۵)ډېره- اړخ- جمع اړې-

اړی:(اَ-ړی)اسم- جمع- مذکر- بغوټې- هغه غنډارې چې په مرئ کښې پېدا کيږی-

اړيکے:(اَ-ړی-کے)اسم- واحد- مذکر- کڼ سېورے لرونکې يوه وَنه- وګورئ اړے-

اړيکے:(اَ-ړی-کے)اسم- واحد- مذکر- سپين خوشبُويه ګل لرونکې يوه وَنه-

اړی ګړی:(اَ-ړی-ګو-ړی)اسم- پهٔ يوه پښه ګېدونکې يوه لوبه- کوکاسخے- ارګړے-

اړيګر:(اَ-ړی-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه درېمګړے چې دَ دوو تنو پهٔ مېنځ کښې دَ فېصلې پهٔ غرض ناست وی- خو سکتېه او صفا خبره يو ته هم نهٔ شی کولے او دَ هر يو پهٔ خبره اُو کوی- دوه زړے- دوه ژبے- مؤنث اړيګره- جمع اړيګری-

اړين:(ا-ړين)اسم- مذکر- يو دارُو چې پهٔ زخمونو لګولے شی- ايډين- (ايوډين- انګريزی)-

اړېرل:(اَ-ړې-رل)مصدر- تاخير کول- ډيل راوستل- ډيل کول-

اړېرلې:(اَ-ړې-رهٔ-لې)اسم صفت- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې حمل ئې پهٔ خېټه کښې دَ وخت نه زيات شی-

اړېرلے:(اَ-ړې-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ اړېرل-

اړېرن:(اَ-ړې-رن)حاصل مصدر- وګورئ اړېرل-

اړېرنګ:(اَ-ړې-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ اړېرل-

اړېرنه:(اَ-ړې-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اړېرل-

اړېرونکے:(اَ-ړې-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړېرونکی- مؤنث اړېرونکې- وګورئ اړېرل-

اړېل:(اَ-ړېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کاريز يا حوض پهٔ دېوال کښې لګېدلی کاڼی- (۲- صفت)دَ کومې غاړه چې دَ پرېوتو پهٔ وجه اُرته شوی وی-

اړېلے:(اَ-ړې-لے)اسم- وګورئ اَړېل-

اړی:(اَ-ړی)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)دَ زمکې يوه حصه- (۲)هغه زمکه چې کرونده ګر ئې دَ بچو پهٔ نامه خلاصه کړی- (۳)دَ کلی پهٔ خوا کښې پټے- باړی-

اړے:(اَ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه لرګے چې اُوهٔ پوستکی لری- (۲)هغه لرګے چې دَ مېچنې دَ پل ګرځولو دَ پاره لګولے شی- تيرک- (۳)دَ ښار ګېر چاپېره قلعه- جمع اړی-

اړے کوړے:(اَ-ړے-کو-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- بېړن- شل- کجے-

اذان:(اَ-ذان)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ نمانځهٔ دَ جمعې دَ پاره دَ را بللو آواز- بانګ- (۲)دَ چرګ آواز- پانګ- جمع اذانونه- (م- عربی)-

اذکار:(از-کار)اسم- جمع- مذکر- (۱)وېناګانې- قصې- بيانونه- (۲)وعظ- (۳)وظيفې- واحد ذکر- (م- عربی)-

اذن:(ا-ذن)اسم- واحد- مذکر- اجازت- رضا- خوښه- منّنه- اُوده- دَ دَم درُود اجازه-

اذوقه:(اَ-ذو-قه)اسم- واحد- مؤنث- خواړه- توښه- (م- عربی)-

اذيت:(اَ-ذی-يت)اسم- واحد- مذکر- ربړ- خور- کړاؤ- (م- عربی)-

ار:(ار)حرف- (۱)دَ حېرانئ کلمه- دَ تعجّب غږ- دَ طنز کلمه- (۲)دَ خرهٔ دَ جنګولو دَ تحريص کلمه- دَ خرهٔ دَ بيلولو او شړلو دَ پاره هم پهٔ ځينو ځايُونو کښې استعماليږی-

اراب:(ا-راب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ايراب-

ارابه:(ا-را-به)اسم- واحد- مؤنث- پټی ته دَ اُبهٔ خور د پاره کنستے لښتے- ورخ-

اَرابه:(اَ-را-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ ټوپکو يو ځائے بارړ- پهٔ ټوپکو سره ګډې پړې- يو ځائے ښرونه- (۲)اربه- پايه- درګړ- موږې- ټپر- دَ موټره بګی يا دَ ګاډی پايه- ګاډی-

اراټ:(ا-راټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اَرټ-

اراخ:(اَ-راخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)وَله- لښتے- (۲)الګېده- شله- جمع اراخُونه-

ارادت:(ا-را-دت)اسم- (۱)مُريدی کونه- (۲)اراده- (۳)اخلاص- ګروهه-

ارادتاً:(ا-را-د-تن)متعلق فعل- پهٔ قصد- قصداً- پهٔ نيت-

اراده:(ا-را-ده)اسم- واحد- مؤنث- نيت- دَ انتخاب اختيار او فېصلې کولو قوّت او صلاحيّت او دَ دې استعمال-

ارادی:(ا-را-دی)متعلق فعل- (۱)پهٔ اراده- (۲)قصدنی- شعوری- قصدی- عمداً- قصداً-

اراړه:(اَ-را-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- ټرټرې ژبه- ټرټرې- هغه ژبه چې پهٔ خبرو کښې نښلی-

اراسته:(ا-راس-ته)اسم صفت- ښکلے شوے- پسوللے- (فارسی آراستن نه اسم مفعول)-

اراک:(اَ-راک)اسم- واحد- مذکر- دَ مسواک وَنه- بانيکړ- پلېونه- پلمن-

اراک:(اَ-راک)صفت- مذکر- هوښيار- پوه- مؤنث اراکه- جمع اراکې/ اراکيان-

اراکين:(اَ-را-کين)اسم- جمع- غړی- دَ رُکن جمع- (عربی)-

ارام:(اَ-رام)اسم- مذکر- دَ حرکت نه سکون ته منتقلی- قرار- قلارے- دَ منډې مقابله کښې ورو تګ- دَ ورو تګ مقابله کښې وُدرېدنه- دَ وُدرېدلو مقابله کښې کښېناستنه- د کښېناستلو مقابله کښې څملاستنه او دَ څملاستلو مقابله کښې مړکېدنه- (ش- فارسی- آرام)-

ارام:(اَ-رام)اسم- مذکر- وګورئ حرام-

ارام تيا:(اَ-رام-تيا)اسم- واحد- مؤنث- ارام- فارغ البالی- راحت- سکون- آرام-

"ئ" (څې-رل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پيا-لې)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ارامچک:(اَ-رام-چَک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مټونګے- حرامی- (۲)وران ماشوم- شریر ماشوم- شوخ ماشوم-

ارام څوکی:(اَ-رام-څو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ارام ده- ارام کرسی- هغه کرسی چې بنیادم پرې په قلار کښېناستے شي- ارام چوکۍ-

ارام طلب:(اَ-رام-طَ-لَب)اسم صفت- واحد- مذکر- ارام غښتونکے- ځان اسان- جمع ارام طلبی-

ارام طلبی:(اَ-رام-طَ-لَه-بی)اسم- ځان آسانی- سُستی- (م- فارسی)-

ارام کرسی:(اَ-رام-کر-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه کرسی چې د کښېناستلو سره پرې آرام حاصلیږی- ارام څوکی-

ارام ګاه:(اَ-رام-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- د آرام ځاے- (م- فارسی)-

ارامول:(اَ-را-مه-وَل)مصدر متعدی- (۱)دمه ورکول- هوساکول- سیله ورکول- (۲)قرارول- چپ کول- غلے کول-

ارامونے:(اَ-را-مو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ حرامونے/حرامی-

ارامه ارامی:(اَ-را-مه-اَ-را-مي)اسم- مؤنث- پوره قراری- پوره سکون-

ارامی:(اَ-را-مي)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حرامی- (۲)آرام سره متعلق-

ارامېدل:(اَ-را-مې-دَل)مصدر لازم- (۱)هوساکېدل- (۲)بې غمه کېدل- (۳)چُپ کېدل-

ارائش:(اَ-را-اش)اسم- ښکلے کونه- ښائسته کونه- پول سینګار- (کول/کېدل مصدرونه)-

ارب:(اَ-رب)اسم- واحد- مذکر- اړه-حاجت- ضرورت- (م- عربی)-

ارب:(اَ-رَب)اسم عدد- سل کروړه-

ارباب:(اَر-باب)اسم- جمع (پښتو کښې واحد)- (۱)پالونکی- د رب جمع- (۲)د خیلو مومندو داوُدزیو او کاسیو د خانانو خطاب- (م- عربی رب)-

اربشکے:(اَر-بش-کے)اسم- واحد- مذکر- یو بې پاڼو صحرانی بوټے چې د دارُو په پول پکارولے شی او اېفیدرین ترې هم جوړیږی-

اربش لو:(اَر-بش-لو)اسم- واحد- مذکر- هغه موسم چې د اُربشو لو پکښې کیږی- وساک-

اربشه:(اَر-بَه-شه)اسم- واحد- مؤنث- د اوړی د فصل مشهوره غله او د هغې بوټے- نباتاتی نوم هورډیم ولګېر- (۲)عُمر- روزی- جمع اربشې- د یو معنو کښې "سپروربشه" هم استعمالیږی-

اربشینه:(اَر-بَه-شی-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)د اربشو څخه جوړه- (۲)د اُربشو په رنګ- وګورئ وربشینه-

اربکتیا:(ار-بک-تیا)اسم- واحد- مؤنث- مضبوطونه- مضبوطی- کلکوالے- پوخوالے-

اربکے:(اَر-به-کے)اسم- واحد- مذکر- پولیس- پولیس والا- هغه سرکاری ملازم چې د امن و امان قائمولو او د خلقو د حفاظت ذمه وار وی- (افغانستان)-

اربوده:(اَر-بو-ده)اسم صفت- موړ- د اوږی ضد-

اربوز:(اَر-بوز)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ځناور پوزه- خله- (۲)د بنیادم څېره- جمع اربوزونه- وګورئ وربوز-

اربه:(اَر-به)اسم- واحد- مؤنث- پله- پټه- جمع اربې-

اربه:(اَر-به)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ارابه-

اربېګ:(اَر-بېګ)واحد/جمع- مذکر- نژرې- خواته- ترځنګه- اړخ ته- جُخت- څنګ ته-

ارپکے:(اَر-په-کے)اسم- واحد- مذکر- د چت پاسنی حصه یا مخ- جمع ارپکی-

ارپکی:(اَر-په-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د څادر یا ټغر په څنډو کشیده کاری-

ارپیلته:(اَر-پي-له-ته)اسم- واحد- مؤنث- جمع ارپیلتې- لته- پرلتی-

ارت:(اَرت)صفت- واحد/جمع- مذکر- فراخ- پراخ- لۀ بنده ازاد- پلن- مؤنث ارته- جمع مؤنث ارتې-

ارتاو:(اَر-تاو)صفت- د ارتاوېدل نه صفت- اړتاؤ شوے-

ارتاوز:(اَر-تا-وز)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اړتاؤک-

ارتاوول:(اَر-تا-وه-وَل)مصدر متعدی- غُرخول- کوزارول- ویشتل- پرتاوول-

ارتاوون:(اَر-تا-وه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ارتاوول-

ارتاوونکے:(اَر-تا-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارتاوونکی- مؤنث ارتاوونکې- وګورئ ارتاوول-

ارتاوونګ:(اَر-تا-وه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ارتاوول- (۲- اسم)- د غشی او نښې تر مینځه فاصله- (۲)یو قسم غشے-

ارتاوونه:(اَر-تا-وه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارتاوول-

ارتاوېدل:(اَر-تا-وې-دَل)مصدر لازم- غُرزېدل- کوزارول- پرېوتل-

ارتاوېدن:(اَر-تا-وې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ارتاوېدل-

ارتاوېدنګ:(اَر-تا-وې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارتاوېدل-

ارتاوېدنه:(اَر-تا-وې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارتاوېدل-

ارتاوېدونکے:(اَر-تا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارتاوېدونکی- مؤنث ارتاوېدونکې- وګورئ ارتاوېدل-

ارتاوېده:(اَر-تا-وې-ده)حاصل مصدر- وګورئ ارتاوېدل-

ارتاویز:(اَر-تا-ویز)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ارتاوک- مؤنث واحد ارتاویزه- جمع ارتاویزی-

ارتاویزه:(اَر-تا-وی-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فضول خبره- بېهوده خبره- (۲)بې نښې ګولی- (۳)بې توکه حمله- خطا حمله- د ړندو حمله- اټکلی حمله- جمع ارتاوېزې-

ارتاوی:(اَر-تا-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یوه سُور رنګې مېوه- وڅکې- وسکې-

ارت بیرت:(اَرت-بیرت)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)فراخ- پلن او وږد- دېر اُرت- (۲)په اُرت د زور اچولو لۀ پاره بېرت د لاحقې په توګه

استعمالیږی- مؤنث اُرته بېرته- جمع مؤنث اُرتې بېرتې-

ارت خېلے:(اُرَتْ-خې-لے)اسم- واحد- مؤنث- هغه چُوری چې دَ خاندان دَ افرادو نه علاوه نورو خلقو ته هم ورکولے شی- دَ تنګ خېلے ضد-

ارتداد:(ار-ت-داد)اسم- مذکر- لهٔ اسلامه اوړېدنه- دَ اسلام راوړو نه پس بیا کافر کېدنه- مُرتد کېدنه-

ارتعاش:(ار-ت-عاش)اسم- مذکر- رپېدنه- لهٔ غصې یا کمزورئ نه دَ لاس او پښو اضطراری رعشه- (م- عربی)-

ارتفاع:(ار-ت-فاع)اسم- مذکر- بلندی- وُچت والے- (م- عربی)-

ارتقا:(ار-ت-قا)اسم- پورته ختنه- درجه پهٔ درجه ترقی کونه او زیاتېدنه- (۲)وده-

ارتقائی:(ار-ت-قا-ئی)متعلق فعل/صفت- دَ ارتقاٗ سره متعلق-

ارتکاب:(ار-ت-کاب)اسم- مذکر- پهٔ یوه اراده عمل کونه- دَ ګناه یا جُرم یا دَ غلطئ کونه- (م- عربی)-

ارت ګاه:(اَرَتْ-ګاه)اسم- واحد- مذکر- ارت ځایُ- لوئ مېدان- ډاګ-

ارتګی:(اَرَتْ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- ارت والے- فراخی- ارتوالے-

ارتل:(اَر-تَل)مصدر- (۱)ستول- ایله کول- پرانستل- (۲)تېز اچول- هوا پرېښودل-

ارتوالے:(اَرَتْ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- فراخ والے- پراخ والے- لوئ والے- ارتګی-

ارتول:(اَر-ته-وَل)مصدر متعدی- دَ اَرت صفت نه مصدر- پراخول- وسعت ورکول- لرې غورځول- فراخول- پراخول-

ارتون:(اَر-ته-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ارتول-

ارتونکے:(اَر-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارتونکی- مؤنث ارتونکې- وګورئ ارتول-

ارتونګ:(اَر-ته-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارتول-

ارتونه:(اَر-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارتول-

ارتیا:(اَر-تیا)اسم- وګورئ ارت والے-

ارتیاکه:(اَر-تیا-که)اسم- واحد- مؤنث- بې پړبه خبره- نا معقوله خبره- جمع ارتیاکې-

ارتینه:(اَر-تی-نه)اسم- واحد- مؤنث- ښځه- عورته- (م- عورتینه- لهٔ عربی عورت څنې)-

ارتېدل:(اَر-تې-دَل)مصدر لازم- پراخېدل- وسعت اخستل- لرې غورزېدل- لرې کوزارېدل- فراخېدل- پراخېدل-

ارتېدن:(اَر-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ارتېدل-

ارتېدنګ:(اَر-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارتېدل-

ارتېدنه:(اَر-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارتېدل-

ارتېدونکے:(اَر-تې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارتېدونکی- مؤنث ارتېدونکې- وګورئ ارتېدل-

ارتېدهٔ:(اَر-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ارتېدل-

ارټ:(اَ-رَټ)اسم- واحد- مذکر- کومې نه دَ اُبو راوکښلو دَ پاره یوه څرخې چې لوټکی پکښې لګېدلی وی او عام طور سره دَ سنډا یا غوایهٔ پهٔ ذریعه چلولے شی-(م- هندی- رهټ)-

ارټ کوټے:(اَ-رَټ-کو-ټے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وړوکے اَرټ- جمع ارټ کوټی-

ارټی:(اَر-ټی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پهٔ یوه خبره ولاړ- سرتمبه- ځېل کوونکے-(۲)ضدی- (۳)تیزن- (۴)مفعول بګی-

ارجل:(اَر-جَل)اسم صفت- مذکر- ناخالص- چې بل څیز پکښې ګډ وی- جمع ارجلی- مؤنث ارجله- (۲)هغه اس چې یوه پښه ئې سپینه وی او نورې پښې ئې بل رنګ وی-

اُرجل:(اُر-جل)اسم- واحد- مذکر- دَ نرئ پانې یو قسم-

ارجل برجل:(اَر-جَل-بَر-جَل)اسم صفت- مذکر- (۱)ارګجه- اروړه- (۲)بې قومه- بې نسبه- اَمجل بنجل- (۲)وګورئ ارجل دویمه معنٰی-

ارجلی:(اَر-جه-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ بلوڅ دَ خاندان یوه وَنه چې لرګے ئې لږ سپین رنګ راوړی-

ارجن:(اَر-جَن)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې نباتاتی نوم ئې ټرمینلیا ارجنه (TERMINALIA ARGUNA)-

ارخی:(اَر-خی)اسم- واحد/جمع- مونث- یو قسم شین بوټے چې پهٔ غنمو کښې پیدا کیږی او کچه خوړلے شی-

ارچه:(اَر-چه)اسم- واحد- مؤنث- اچر- دَ یوئ ونې نامه چې دَ کوټو تیرونه ترې جوړیږی- نباتاتی نوم ابیز پنډرو رائل (ABIES PINDROW ROYLE)-

ارخاړے:(اَر-خا-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ریخے- پهٔ سپرلی کښې دَ ګېډ بیزو دَ کېډې یو مرض- منګ- (۲)یو قسم ساګ- ورخاړے-

ارخالګ:(ار-خا-لګ)اسم- واحد- مذکر- اندرکه- مالوچ لرونکے یا بې مالُوچو واسکټ- (م- ارقالیق ترکی)-

ارخربېل:(اَر-خَر-بې-ل)مصدر- وګورئ خربېل-

ارخشے:(اَر-خه-شے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بلغم- خراشکے- ګروبے- (۲)سالنړے-

ارخښ:(اَر-خښ)مذکر- سابندی- هغه آواز چې دَ زړا پهٔ وخت کښې پهٔ مری کښې بند شی- نښتے اواز-

ارداېه:(اَر-دا-به)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ارداوه- جمع اردابې-

ارداوه:(اَر-دا-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اړداوه- اروبے- بېوړے- دَ غوا مېښو لهٔ پاره دَ اوړو او اُبو نه جوړ خوراک- (۲)هغه مائع چې نرمه او رقیقه وی- جمع ارداوې- (ش- هندی ارداوه-م- فارسی ارد- اوړهٔ- او اُبهٔ)-

اردل:(اَر-دَل)اسم- مذکر- چپړاس- خدمت-

اردلی:(اَر-ده-لی)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ افسر خدمت کونکے- چپړاسی

ئ (ځې-رَل)، ې (ممې-ره-وَل)، ی (پیا-لې)، ے (تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

یا سپاهی- (م- انګریزی اړدلی)-

اردلي توب:(اَر-دَه-لي-توب)اسم- مذکر- دَ اردلي نوکری او پېشه-

اردم خبر:(اَر-دَم-خبر)اسم- وګورئ مردم خبر-

اُردو:(اُر-دُو)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پاکستان سرکاری ژبه- (۲)فوځ- (افغانستان)- (م-ترکي اردو- فوځ)-

اړو:(اَ-ړو)اسم صفت- کلک- تورغوړے- نامنونکے-

اړواؤ:(اَر-ړاؤ)اسم- واحد- مذکر- (دَ ماشومانو تورے) لولو کېدنه- للو کېدنه- وَدَهٔ کېدنه-

اړه:(اَ-رَهٔ-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- تته- چاړی ژبه-

اړه:(اَر-ړه)اسم صفت- جمع- مؤنث- پهٔ جمع- غنډ- ټول- پهٔ اېره- پهٔ مېر- پهٔ یو ځایٔ-

اړے:(اَر-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ اړواؤ- (۲)لمورګې- اړے-

ارز:(ارزْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)عزت- احترام- درناوے- درونددوالے- درنښت- (۲)بها- ارزښت- یرزه- قیمت- بیه- (ش- فارسی)-

ارزان:(اَر-زان)صفت- مذکر- کم قیمته- (م- فارسی)-

ارزان بیه:(اَر-زان-به-یه)صفت- دَ کم قیمت- کم قیمته- دَ لږو پیسو-

ارزانتوب:(اَر-زان-توب)اسم- ارزاني- ارزانوالے- ارزانتیا-

ارزانتیا:(اَر-زان-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ ارزاني-

ارزان پرېوتل:(اَر-زان-پرې-وه-تل) ترکیبی مصدر- ارزان ثابتېدل- پهٔ قیمت راغورزېدل- (ش- فارسی ارزان)-

ارزان والے:(اَر-زان-وا-لے)اسم- وګورئ ارزان-

ارزانول:(اَر-زا-نه-وَل)مصدر متعدی- کم قیمته کول-

ارزانون:(اَر-زا-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ارزانول-

ارزانونکے:(اَر-زا-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارزانونکي- مؤنث ارزانونکې- وګورئ ارزانول-

ارزانونګ:(اَر-زا-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارزانول-

ارزانونه:(اَر-زا-نه-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارزانول-

ارزانه:(اَر-زا-نه)صفت- دَ ارزان مؤنث- وګورئ ارزان-

ارزانه ارزاني:(اَر-زا-نه-اَر-زا-ني)اسم- واحد- مؤنث- ډېره ارزاني-

ارزاني:(اَر-زا-ني)اسم- واحد- مؤنث- دَ قیمتونو کمے- دَ بیو ټیټېدنه یا راکوزېدنه-

ارزانېدل:(اَر-زا-نې-دَل)مصدر لازم- کم قیمته کېدل- قیمت را غورځېدل-

ارزانېدن:(اَر-زا-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ارزانېدل-

ارزانېدنګ:(اَر-زا-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارزانېدل-

ارزانېدنه:(اَر-زا-نې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارزانېدل-

ارزانېدونکے:(اَر-زا-نې-دُون-کے)اسم- فاعل- واحد- مذکر- جمع ارزانېدونکي- مؤنث ارزانېدونکې- وګورئ ارزانېدل-

ارزانېدهٔ:(اَر-زا-نې-دَهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ارزانېدل-

ارزښت:(اَر-زښت)لهٔ ارزېدل ځني اسم- (۱)قیمت- قدر- جوګه والے- (۲)دَ قابلیت مطابق عزت او احترام-

ارزقه:(اَر-زه-قه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ارکانه-

ارزو:(اَر-زُو)اسم- واحد- مؤنث- خواهش- دَ زړهٔ ارمان- تمنا-

ارزول:(اَر-زه-وَل)مصدر متعدی- دَ څهٔ جوګه کول- لائق جوړول- برابرول- مناسبت ورکول- دَ کار جوګه کول-

ارزومن:(اَر-زُو-مَن)اسم صفت- واحد- مذکر- اَرزو مند- ارزو لرونکے-

ارزومند:(اَر-زُو-مند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اَرزومن-

ارزومندی:(اَر-زُو-مَن-دی)اسم- دَ ارزو مند کېدو حالت-

ارزون:(اَر-زه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ارزول-

ارزونکے:(اَر-زه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارزونکي- مؤنث ارزونکې- وګورئ ارزول-

ارزونګ:(اَر-زه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارزول-

ارزونه:(اَر-زه-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارزول-

ارزه:(اَر-زه)اسم- واحد- مؤنث- غرنځی- دَ صنوبر وُنه- نباتاتی نوم هائی نس را کس برجیانی- جمع ارزې-

ارزی:(اَر-زی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ عرضي- (م- عرضي فارسی)-

ارزي:(اَر-زي)دَ ارزېدل مصدر فعل حال-

ارزېدل:(اَر-زې-دَل)مصدر لازم- (۱)لائق کېدل- خرڅېدل- (۲)قیمت موندل-

ارزېدن:(اَر-زې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ارزېدل-

ارزېدنګ:(اَر-زې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارزېدل-

ارزېدنه:(اَر-زې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارزېدل-

ارزېدونکے:(اَر-زې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارزېدونکي- مؤنث ارزېدونکې- وګورئ ارزېدل-

ارزېدهٔ:(اَر-زې-دَهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ارزېدل-

اروړل:(اَر-ړل)مصدر- اروړمے کول- اړوقے کول-

اروړمے:(اَر-ړه-مے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ اروړقے/اروړے- (۲)دَ خوب یا ستومانۍ لهٔ لاسه لهٔ خلې بې واکه اسوېلے وتنه- (۳)افسوس ارمان کونه- اسوېلے کونه- جمع اروړمي-

اروړهٔ:(اَر-ړهٔ)اسم- جمع مذکر- وګورئ وارړهٔ-

اروړی بد:(اَر-ړی-بَد)اسم- بد هضمي- دَ زیات خوراک لهٔ کبله سخا اروړمي کونه-

اروړے:(اَر-ړے)اسم- واحد- مذکر- ارژوونے- انژائے- ارمیژے- اروړمے- وګورئ اروړمے/اړوقے-

ارسال:(اَر-سال)اسم- استول- لېږل- (دَ کول کېدل مصدرونو سره) (م- عربي- رسل نه دَ افعال باب)-

ارسی:(اَر-سی)اسم- واحد- مؤنث- شش- دَ نازیانو دَ کتې مخه ګټې چې آئینه لری- اسی- غمے-

ارسین:(اَر-سین)اسم- واحد- مذکر- زیږ ګل لرونکے یو بُوټے چې دَ پسرلی پهٔ آخر کښې شین کیږی-

ارشاد:(اِر-شاد)اسم- مذکر- حُکم- هدایت- لار ښئینه- (عربی کښې مصدر)-

ارشک:(اِر-شک)اسم- واحد- مذکر- رخه- بُغض- حسد- جمع ارشکونه-

ارغاړیز:(اَر-غا-ړیز)صفت- مذکر- (۱)منافق- دوه زړے- (۲)چالاک- مکّار- مرغاړیز-

ارغاړے:(اَر-غا-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوړ- خوبږ- مخ پهٔ ښکته- جمع ارغاړی-

ارغال:(اِر-غال)اسم- واحد- مذکر- الغار- حمله- اپه- (م- ترکی یرغال)-

ارغټ:(اُر-غټ)اسم صفت- مذکر-غټ- سکټ- ارلګ- (کول/کېدل) قلم کونه- سټکورے کونه-

ارغجه:(اَر-غه-جه)اسم صفت- ارګجه- ګړوړ- (م- ترکی ارګجه)-

ارغخنے(اَر-غخ-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)غرځهٔ- صحرانے کډ- لکه شویه- (۲)دَ پنډی مهوکے-

ارغچ:(اَر-غچ)اسم- واحد- مذکر- یو خېلی لرونکے بُوټے چې مخ پهٔ بره خیژی- عشق پېچان- عشق پېچه- سپېڅه- سپېرچه- پربوټې- پېروتې- نباتاتی نوم میډ راهېلکس- یو قسم ته یُ اپومرا کواموس لټ/ کواموس لټ ولګېرس هم وائی-

ارغچله:(اَر-غچ-له)اسم- واحد- مؤنث- هغه رسی چې ډېر تاؤ یُ خوړلے وی- تېرسرے- دَ ختازرو دَ ترلو رسی- کلېچ پړے- جمع ارغچلې-

ارغځنی:(ار-غه-ځه-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- غرځنی ګډه-

ارغځنے:(ار-غځ-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ غرځهٔ دَ پښې سپښته- ببړی- بجل-

ارغز:(ار-غز)اسم- واحد- مذکر- غز- اکوړ- جمع ارغزان-

ارغستلی:(اَر-غس-تهٔ-لی)اسم- واحد- مؤنث- بې ډبه- بې طوره- نامُناسبه خبره- اپلته-

ارغسه:(اَر-غهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- توره چېلی-

ارغش:(اَر-غش)صفت- مذکر- غنم رنګ- دَ غنم پهٔ شان رنګ لرُونکے-

ارغشے:(اَر-غه-شے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ارخشے- اخرشے- بلغم- خراشکے- (۲)دَ مری یا غاړې صفا کولو کار-

ارغمال:(اَر-غه-مال)اسم صفت- واحد- مذکر- وګوری یرغمال-

ارغمک:(اَر-غُ-مک)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه جاندار چې جسمانی ترقی نهٔ کوی- منځلے- چې وده نهٔ کوی- ټېمرکے- مېټرسېټر-

ارغنج:(اَر-غنج)اسم- واحد- مذکر- الوبالو- ارغنجا- ارغنجال- ارغنجک- ارغنجی- ارغنجے- دَ الوچې یو قسم- نباتاتی نوم پرونس ډومیټیکا یا دَ دې نور قسمونه- جمع ارغنجان-

ارغنجا:(اَر-غن-جا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارغنج-

ارغنجال:(اَر-غن-جال)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)وګورئ ارغنج- (۲)کېلاس-

ارغنجایه:(اَر-غن-جا-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ الوبخارې لهٔ خاندان یوه تروه مېوه- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ ارغنج-

ارغنجک:(اَر-غن-جک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارغنج-

ارغنجو:(اَر-غن-جو)اسم- ځنګلی الوچه- دَ الوچې یو قسم- نباتاتی نوم پرونس ارمینیکا ایل (PRUNUS ARMENIACA "L.")-

ارغنجی:(اَر-غن-جی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ارغنج-

ارغنجے:(اَر-غن-جے)اسم- وګورئ ارغنج-

ارغنخه:(اَر-غن-خه)اسم- واحد- مؤنث- یوه وُنه، چې دَ بلوط خاندان ته نژدې وی- دَ کورکس ایلیکس یو قسم- جمع ارغنخې-

ارغند:(اَر-غند)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ګټو دَ بندونو مهوکی- (۲)ټیک- دَ غزانو ټیک- جمع ارغندُونه-

ارغنډې:(اَر-غن-ډې)اسم- جمع- مؤنث- دَ یوې لوبې نامه-

ارغوان:(اَر-غه-وان)اسم- مذکر- دَ سُور رنګ یو ګُل چې خوږ وی- ارغمان-

ارغوانی:اَر-غه-وا-نی)اسم صفت- دَ ارغوان پهٔ شان رنګ- سور رنګ- سور- لال-

ارغوبرغو:(اَر-غو-بر-غو)اسم صفت- بُغ- تریو تندے- بټ کوټے- غټه تندے- سپېرهٔ مخ- برووړه تندے- ګُنجې تندے- پړسېدلې ټنډه-

ارغوچ:(اَر-غوچ)اسم- واحد- مذکر- ټاټکه- یو قسم واښهٔ دے چې ښېخ یُ خوړے شی-

ارغوچکه:(اَر-غو-چه-که)اسم- واحد- مؤنث- کالکوچکه- دَ مستی ټوپ- جمع ارغوچکې-

ارغوچېدل:(اَر-غو-چې-دَل)مصدر- دَ یو ځایُ نه ټوپ وهل- ټوپلېدل- وُچتېدل- الوتل-

ارغوچېدن:(اَر-غو-چې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ارغوچېدل-

ارغوچېدنګ:(اَر-غو-چې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ارغوچېدل-

ارغوچېدونکے:(اَر-غو-چې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارغوچېدونکی- مؤنث ارغوچېدونکې- وګورئ ارغوچېدل-

ارغوچېدهٔ:(اَر-غو-چې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ ارغوچېدل-

ارغوچی:(اَر-غو-چی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ غرهٔ پهٔ لمن کښې هغه زمکه چې اُبهٔ پرې بهیږی-

ارغوځکے:(اَرغ-وَځ-کے)اسم- واحد- مذکر- یوه ګیاه- یو قسم واښهٔ-

ارغوش:(اَر-غوش)اسم صفت- مذکر- غنم رنګے- تور غنم رنګے- الغوش-

ارغوشتکه:(اَر-غوش-ته-که)اسم- واحد- مؤنث- ټوپ- دانګه- درینچکه- درنچکه- غړدانګه- ارغوچکه- کالکوچکه- جمع ارغوشتکې-

ارغوشول:(اَر-غو-شه-وَل)مصدر متعدی- سور کول- غنم رنګے کول-

ارغوشون:(اَر-غو-شه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ارغوشول-

ارغوشونکے:(اَر-غو-شه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارغوشونکی- مؤنث ارغوشونکې- وګورئ ارغوشول-

ی" (ځی-رل)، ې"(هې-ره-وَل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ارغوشونګ:(اَر-غو-شه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارغوشول-
ارغوشونه:(اَر-غو-شه-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارغوشول-
ارغوشېدل:(اَر-غو-شې-دَل)مصدر لازم- سُور کېدل- غنم رنګے کېدل-
ارغوشېدن:(اَر-غو-شې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ارغوشېدل-
ارغوشېدنګ:(اَر-غو-شې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارغوشېدل-
ارغوشېدنه:(اَر-غو-شې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارغوشېدل-
ارغوشېدونکے:(اَر-غو-شې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارغوشېدونکی- مؤنث ارغوشېدونکې- وګورئ ارغوشېدل-
ارغوشېده:(اَر-غو-شې-دَه)حاصل مصدر- وګورئ ارغوشېدل-
ارغولے:(اَر-غو-لے)اسم- واحد- مذکر- الله هو- الله زاری یا بارانو- یوه لوبه چې ماشومان پکښې کور پهٔ کور دَ باران وربدو دَ پاره خېر غواړی او دا وائی چې ارغولی یرغولی الله باران و کړې یا تور تورمخے دانې غواړی لهٔ خدایهٔ باران غواړی- پهٔ سر څپېره غواړی- امینکو- امینکے- ارګوړے-
ارغومے:(اَر-غو-مے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ورغومے-
ارغونجکه:(اَر-غون-جه-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم واښهٔ چې پهٔ سپرلی کښې دَ غنمو او اُوربشو پهٔ پټو کښې کیږی- جمع ارغونجکې-
ارغونځه:(اَر-غون-ځه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ زړهٔ کښې دَ غم غُصې غُته- خوامش- ارمان- جمع ارغونځې-
ارغونچکی:(اَر-غون-چه-کی)اسم- واحد- مؤنث- یوه مشهوره لوبه- چلم چټړی-
ارغونچے:(اَر-غون-چے)اسم- مذکر- درې کړېز تار- درې برغېز پړے- درې لړېز پړے-
ارغوند:(اَر-غوند)اسم- واحد- مذکر- دَ بېدیو پهٔ لوبه کښې هغه غټه سپېته چې نورې سپېتې پرې ویشتلے شی-
ارغونکے:(اَر-غون-کے)اسم- واحد- مذکر- غرنیز پیاز- هغه پیاز چې پهٔ غرهٔ کښې کیږی- خزی- خېنزه- نباتاتی نوم (URGINEA INDICA)-
ارغونے:(اَر-غو-نے)اسم- وګورئ نرغون-
ارغوے:(اَر-غهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- ورغومے- دَ لاس تلے- جمع ارغوی-
ارغه:(اَر-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کورنو کوترو یو قسم چې پېرې الوځی- (۲)مردکی- (۳)سپېته- غټه سپېته (بېږی)-
ارغه:(اَر-غه)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ کاڼهٔ وېلنو، سپېرکو، دَ مرغو دَ غلو او ځنې نورو توکو نه جوړ هغه دارو چې ماشومانو ته یې دَ خوراک دَ پاره دَ یو کال تر عمره ورکوی-
ارغېچل:(اَر-غې-چَل)مصدر- مزی کول- تاؤ کول-
ارغېچلے:(اَر-غې-چهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ارغېچلی- مؤنث ارغېچلې- وګورئ ارغېچل-
ارغېچن:(اَر-غې-چَن)حاصل مصدر- وګورئ ارغېچل-
ارغېچنګ:(اَر-غې-چَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارغېچل-

ارغېچنه:(اَر-غې-چهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارغېچل-
ارغېچونکے:(اَر-غې-چُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارغېچونکی- مؤنث ارغېچونکې- وګورئ ارغېچل-
ارغی:(اَر-غی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کُنه- مقعد-
ارقام:(اَر-قام)اسم- جمع- مذکر- رقمُونه- واحد رقم-
ارکاره:(اَر-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کړځو- کړځی- کټېری- دَ ترکې لګولو لوښے- هغه کړیچے چې وړه دسته لری- (۲)دَ اُسپنې یا زیږو جوړه هغه تاپه چې پکښې د مېښکو یا تعویذونو د کنړو دَ چکو نمونې وی- دَ زرګر یوه آله- (۳)دَ ملکانو یو قسم لوبه-
ارکان:(اَر-کان)اسم- جمع- غړی- دَ رکن جمع-
ارکانی:(اَر-کا-نی)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خټکے چې غټ پوستکے لری-
ارکنډپرکنډ:(اَر-کَنډ-پَر-کَنډ)صفت- (۱)ټوکړې ټوکړې- (۲)تباه و برباد- کنډ کپر- (۳)خوار و زار-
ارکین:(اَر-کین)اسم- (۱)وررور- (۲)وررور ته دَ خطاب توری-
ارګ:(ارګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)قلعه- کوټ- (۲)کابل کښې دَ افغانستان دَ باچا دَ محل نامه- (م- ترکی ارګ)-
ارګانه:(اَر-ګا-نه)اسم- واحد- مؤنث- ارزقه- خوراک- خرڅ- نفقه- خورومه- شومه-
ارګ برګ:(ارګ-برګ)اسم- اړی ګړی- ارګوړے- ارګړے-
ارګجه:(اَر-ګه-جه)اسم صفت- (۱)ګډوډ- مخلوط- (۲)دَ یو مرکّب عطر نوم- (ش- ترکی، هندی رګجه)-
ارګجی:(اَر-ګه-جی)اسم- واحد- مذکر- مر رګه- ګډوډ- جمع ارګجیان-
ارګړے:(اَر-ګَ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارګوړے/ اړی ګړی-
ارګره:(اَر-ګه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اس لره پهٔ یوه دائره کښې دَ ګېره کولو دَ پاره چکرونه ورکونه- (۲)دَ اس زغلولو مېدان- (ورکول/ ورکېدل- مصدرونه)- جمع ارګړې-
ارګنه:(اَر-ګه-نه)اسم- واحد- مؤنث- پنجره لرونکے وَر- جمع ارګنې-
ارګوړے:(اَر-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې لوبې نُوم چې پکښې یوه پېنه پهٔ لاس ونیسی او پهٔ بله پېنه پهٔ ټوپونو ځی- اړی ګړی- ارګ برګ-
ارګورے:(اَر-ګو-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارغولے-
ارګېره:(اَر-ګې-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو غرنیز بوټے چې سرې سرې دانې نیسی- جمع ارګېرې-
ارلجه:(اَر-له-جه)اسم صفت- واحد- مؤنث- بې فائدې او نا معقوله خبره- اوتې بوتې- فضول خبره- ناشولته- بې وقره- نا غوړنده- نوخرنده-
ارلچې برلچې:(اَر-له-چې-بَر-له-چې)متعلق فعل- (۱)انګتې بنګتې- ارلېچې برلېچې- لاس لګونه- امبړ چمبړ- خپرې کېدنه- منګلې کېدنه- (۲- صفت)ارجل برجل-
ارلګ:(اَر-لَګ)اسم صفت- (۱)ږچ- غټ- چورلټ- بیخی لهٔ مونډه- لهٔ بېخه-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ"(ږو-ږې-دۀ)

سکټ- (۲- متعلق فعل)- پورې راپورې-

ارلګ ارلګ:(اَر-لګ-اَر-لګ)صفت- بیل بیل- (شاید الګ الګ)-

ارلي:(اَر-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)لاربندي- خربندي- (۲)د لارې د بندولو د پاره یو وړو لرګے ایښونه-

بندولو د پاره یو وړو لرګے ایښونه-

ارم:(ا-رم)اسم- واحد- مذکر- (۱)د هغه باغ نوم چې شداد جوړ کړے وو- (۲)جنت-

ارمان:(اَر-مان)اسم- واحد- مذکر- (۱)د خواهش د نۀ پوره کېدو پۀ نتیجه کښې د محرومۍ احساس- (۲)شدید خواهش- ارماند- جمع ارمانونه-

ارماند:(اَر-ماند)اسم- وګورئ ارمان-

ارمانژن:(اَر-مان-ژن)اسم صفت- واحد- مذکر- ارمان لرونکے- ارماني-

ارمانول:(اَر-ما-نه-ول)مصدر- څۀ پسې ارمان ښکاره کول-

ارمانون:(اَر-ما-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ارمانول-

ارمانونکے:(اَر-ما-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارمانونکي- مؤنث ارمانونکې- وګورئ ارمانول-

ارمانونګ:(اَر-ما-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ارمانول-

ارمانونه:(اَر-ما-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارمانول-

ارماني:(اَر-ما-ني)اسم صفت- وګورئ ارمانژن-

ارمانېدل:(اَر-ما-نې-دل)مصدر لازم- څۀ پسې ارمان ښکاره کېدل-

ارمانېدن:(اَر-ما-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ارمانېدل-

ارمانېدنګ:(اَر-ما-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ارمانېدل-

ارمانېدنه:(اَر-ما-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ارمانېدل-

ارمانېدونکے:(اَر-ما-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ارمانېدونکي- مؤنث ارمانېدونکې- وګورئ ارمانېدل-

ارمانېدۀ:(اَر-ما-نې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ارمانېدل-

ارم توتیا:(ا-رم-تو-تیا)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو بې ازغیو بوټے چې د لېچنو سترګو د پاره ترې دارو جوړیږي- د دې بوټي جرړې رانجو کښې هم استعمالیږي- (۲)یو قسم زنګ آکسائیډ-

ارمتے:(اَر-مه-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- ګړندے- برندے- بیړندے- چټک- چاغ- چت- چابک- تند- تادي کونکے- جلتي کونکے- تلوار کونکے-

ارمته:(اَر-مه-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- غریبه او بې وسه ښځه- کنده-

ارمچک:(اَر-م-چک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اَرامچک-

ارمړ:(اَر-مړ)اسم- واحد- مذکر- وزیرستان کښې د هغې قبیلې نوم چې د بایزید انصاری ورسره تعلق وۀ-

ارمړي:(اَر-مړ-ي)صفت- (۱)اَرمړ سرۀ متعلق- (۲)اسم- د اُرمړو ژبه-

ارمز:(اَر-مز)اسم- واحد- مذکر- د جنترۍ د میاشتو اوله ورځ- وګورئ هرمز- (م- ژند)-

ارمغان:(اَر-م-غان)اسم- (۱)سوغات- تحفه- هدیه- (۲)ډالۍ ټیپالي- (۲)خونبې-

ارمغاني:(اَر-م-غا-ني)اسم صفت- د ډالۍ پۀ طور د پیشکش پۀ توګه- پیشکشي- سوغاتي-

ارمکے:(اَر-م-کے)اسم- واحد- مذکر- د شپنو خاصه لښته- ټنډۍ یا چوکه- ډانګه- کونټې-

ارمل:(اَر-مل)اسم- واحد- مذکر- د اینځر غندې یوه ونه چې عام طور سره پۀ غرونو کښې پیدا کیږي- نباتاتي نوم فیکس کلوم کریټا (FICUS CLOMCRITA)-

ارمل خرمل:(اَر-مل-خر-مل)اسم صفت- جنګ ته تیار- غصه- تهربدلے-

ارمن:(اَر-من)اسم- واحد- مذکر- امبور-

ارمند:(اَر-مند)اسم- واحد- مذکر- جمع ارمندینه- وګورئ ارمان-

ارمنے:(اَر-مه-نے)اسم- واحد- مذکر- کنده بوټے- چې پۀ یولو پټو کیږي څاروي ې نۀ خوري- پۀ پنیو ې د خوانکو علاج کیږي- زهرکے- ژړکولے-

ارموسته:(اَر-موس-ته)اسم- جمع- مؤنث- کنډ-

ارمولے:(اَر-مو-لے)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو یوه بیماري- وګورئ اورمولے-

ارمولے ماتول:(اَر-مو-لے-ما-ته-ول)ترکیبي مصدر- پۀ یوه خاصه طریقه د اورمولي علاج کول-

ارمونې:(ا-ره-مو-نې)اسم- واحد- مذکر- ډبلې- هغه بېضوی لرګے چې د ژرندې د پلۀ د ښویولو او اړولو د پاره کار ترې اخستے شي-

ارمونے:(ا-ره-مو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- خیرالبیان کښې راغلے توری- اوس متروک دے- وګورئ حرامونے-

ارمونیا:(اَر-مو-ني-یا)اسم- واحد- مؤنث- (افغانستان)هارمونیم- د ګډتو باجه-

ارمېژے:(اَر-مې-ژے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اروړمے- جمع ارمېژي-

ارمېړ:(اَر-مېړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ورمېږ- جمع ارمېږونه-

ارنډ:(اَ-رنډ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارهنډه-

ارنډه:(ا-رن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- جمع ارنډې- وګورئ ارهنډه-

ارنې:(ا-ره-نې)اسم- مؤنث- (۱)بېر پۀ تشویش تلاش- مرنې- ګنې- لېوال توب- تلوسه- (۲)د "ارنے" مؤنث-

ارنے:(ا-ره-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- حرصي- حرصناک- لالچي- جمع ارني- جمع/مؤنث ارنې-

اروا:(اَر-وا)اسم- واحد- مؤنث- روح- ساه- (م- ارواح- عربي)-

اروا ځک:(اَر-وا-ځک)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اروا وړے-

ارواح:(اَر-واح)اسم- جمع- مؤنث- (پښتو کښې واحد)- د روح جمع- (۱)ساه- خان- (۲)نیت- خواهش- روح- (م- عربي)-

اروا خوار:(اَر-وا-خوار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اروا وړے- جمع اروا خواري- مؤنث اروا خواره-

"ی" (خې-رل)، "ې" (مې-ره-ول)، "ی" (پیا-لې)، "ے" (تن-دیر) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

اروا ړی:(اَر-زا-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- توري توري داني لرونکے یو بوټے چي دَ غنمو پهٔ فصل کښې کيږي-

اروابناد:(اَر-زا-بناد)اسم- واحد- مذکر- مرحُوم- مړشوے- (افغانستان)-

اروا غټ:(اَر-وا-غټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غاوره- بې مروته- غټ نظرے- لوئ نظرے- لوئ چارے- (۲)ارواوږے- وږسترکے- نهٔ مړېدونکے- جمع اروا غټي- مؤنث اروا غټې-

اروالے:(اَر-وا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اصیل- شریف- (۲- اسم)- شرافت- اصیل توب-

ارواوږے:(اَر-وا-وۀ-ږے)اسم صفت- وګورئ ارواوږے-

ارواوږے:(اَر-وا-وۀ-ږے)اسم صفت- واحد- مذکر- وږسترکے- حریص- شوم- لالچي- ارزاخک- ارواخوار- جمع ارواوږي- مؤنث ارواوږې-

اروته:(اَر-وه-ته)اسم- واحد- مؤنث- ښځه- عورته- جمع اروتې-

اروړ:(اَ-روړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بُغض- رخه- کینه- حسد- (۲)خفګان- جمع اروړونه-

اروړژبے:(اَ-روړ-ژۀ-بے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چي ژبه ئې نښلي- چاړا- ترټرے- جمع اروړ ژبي- مؤنث اروړ ژبې-

اروړه:(اَ-رو-ړه)صفت- مؤنث- کږمږ- کږوږ- پهٔ مختلفو توکو مشتمل- ارګجه-

اروړه توب:(اَ-رو-ړه-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ اروړه کېدو حالت-

اروړی:(اَ-رو-ړی)صفت- دَ اروړ سره متعلق-

اروړے:(اَ-رو-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بد مزاجه- جنګیالے- تېز طبیعته- تریو تندے لرونکے- (۲)ضدی- پهٔ یوه خبره ټینګ ولاړ- جمع اروړي- مؤنث اروړی-

اروړی:(اَ-رو-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ غوا مېښې کچه څرمن- (۲-اسم صفت)- دَ "اروړے" مؤنث-

اروژے:(اَ-رو-ژے)اسم صفت- واحد- مذکر- اَرواوږے- وږ سترګې-

اروسي:(اَ-رو-سي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اوسې، هوسې-

اروسی:(اَ-رو-سی)اسم- واحد- مؤنث- هغه خوراکه (ډوډی) چي دَ مړی کور والو ته دَ خپلو خپلوانو لهٔ خوا تر دریمې شپې پورې ورکولے شي- ترخه- دَ غم ډوډی-

ارومرو:(اَ-رو-مه-رو)متعلق فعل- خرو مرو- خواه مخواه- ضرور-

ارون بېرون:(اَ-رون-بې-رون)اسم صفت- وګورئ ارون درون-

ارون درون:(اَ-رون-د-رون)اسم صفت- دننه بهر- ورچنے او ننه- ارون بېرون-

اروندے:(اَر-ون-دے)اسم فاعل- واحد- مذکر- اورېدونکے- مخاطب- جمع اروندی-

ارونے:(اَر-وه-نے)اسم- واحد- مذکر- خوږ- دَ اُبو وله- (دَ بر سوات لهجه)-

ارول:(اَ-ره-ول)مصدر- بېلل-

اروول:(اَر-وه-ول)مصدر- دَ اَورول بل قرأت- وګورئ اورول-

اروولے:(اَر-وه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اروولي- مؤنث اروولې- وګورئ اروول-

اروون:(اَر-وه-ون)حاصل مصدر- وګورئ اروول-

اروونکے:(اَر-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اروونکي- مؤنث اروونکې- وګورئ اروول-

اروونګ:(اَر-وه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اروول-

اروونه:(اَر-وه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اروول-

اروونے:(اَر-وه-وۀ-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اروونی- مؤنث اروونې- وګورئ اروول-

اروی:(اَر-وی)فعل حال- لهٔ "اروېدل" فعل حال واحد/جمع غائب-

اروېدل:(اَر-وې-دل)مصدر- دَ اورېدل بل قرأت-

اروېدن:(اَر-وې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اروېدل-

اروېدنګ:(اَر-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اروېدل-

اروېدنه:(اَر-وې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اروېدل-

اروېدونکے:(اَر-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اروېدونکي- مؤنث اروېدونکې- وګورئ اروېدل-

اروېدۀ:(اَر-وې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ اروېدل-

اروے:(اَر-وے)اسم- واحد- مذکر- بنګالو- ورو آواز- کشار-

اره:(اَ-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)پائېداره- (۲- اسم)بنیاد- بېخ- اصل-

اره:(اَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ترکاڼانو دَ لرګی پرېکولو غاښې لرونکی آله- څېری- څره-

اره دوباره:(اَ-ره-دو-با-ره)اسم صفت- څیرې ویرې- اره شوې-

اره کش:(اَ-ره-کش)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوه کسی اره- (۲- صفت)هغه سړے چي پهٔ اره لرګی څیری- جمع اره کشان- مؤنث اره کشه-

اره کولی:(اَ-ره-کو-لی)اسم- واحد- جمع- یو قسم تراقلی (کره کولی) پوستکے-

اره کی:(اَ-ره-کی)اسم تصغیر- وړه اره-

ارمټ:(اَر-مټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اَرټ-

ارمږ:(اَر-مږ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اَرټ-

ارمږ:(اَر-مږ)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)یو قسم بوټے چي دَ غنمو جوارونه کښې چاپېره پهٔ غاړه کرلے شي او اکثر دَ خشاک پهٔ توګه استعمالولے شي- جینجر- جینجڼ- یو قسم دال- نباتاتی نوم سائے تی سس کیجن-

ارمنډه:(اَر-من-ډه)اسم- واحد- مؤنث- یو بوټے چي لهٔ تخم ئې کاسترېل وځي- رنډه- ارنډه- ارنډ- نباتاتی نوم رسی نس کیمونس RICINUS COMMUNIS)- جمع ارمنډې-

آری:(آ-ری)اسم- واحد- مؤنث- شش- ششت- هغه اُنینه لرونکې کټې چي پهٔ کټه کُته اچولے شي- (اُرسی- م- شندی)-

اری:(اَ-ری)اسم- واحد- مذکر- دوه کښُونه لرونکے اوبن-

ارياب كرياب:(اَر-ياب-کَر-ياب)اسم صفت- واحد- مذكر- حېران دريان- حق حېران- پرېشان-

ارياش:(اَر-ياش)اسم- واحد- مذكر- پېروي ملانى- دَ پيو پهٔ سر رش-

اريان:(اَر-يان)اسم صفت- (۱)بې وسه- خوار- غريب- محتاج- موتازه- بې وزله- (۲)هك پك- حېران متعجّب-

اريانتيا:(اَر-يان-تيا)اسم- وګورئ حېرانتيا-

اريان دريان:(اَر-يان-دَر-يان)اسم صفت- وګورئ اريان-

اريانول:(اَر-يا-نه-وَل)مصدر متعدي- وګورئ حېرانول-

اريانولے:(اَر-يا-نه-وَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع اريانولي- مؤنث اريانولې- وګورئ حېرانولے-

اريانون:(اَر-يا-نه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانول-

اريانونكے:(اَر-يا-نه-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع اريانونكي- مؤنث اريانونكې- وګورئ حېرانول-

اريانونګ:(اَر-يا-نه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانول-

اريانونه:(اَر-يا-نه-وَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانول-

اريانه:(اَر-يا-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)هغه ښځه چې خاوند ترې خفه وي- (۲)هكه بكه- (۳)دَ اريان مؤنث-

اريانى:(اَر-يا-نى)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ حېرانى-

اريانېدل:(اَر-يا-نې-دَل)مصدرِ لازم- وګورئ حېرانېدل-

اريانېدلے:(اَر-يا-نې-دَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع اريانېدلي- مؤنث اريانېدلې- وګورئ حېرانېدل-

اريانېدن:(اَر-يا-نې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانېدل-

اريانېدنګ:(اَر-يا-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانېدل-

اريانېدنه:(اَر-يا-نې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانېدل-

اريانېدونكے:(اَر-يا-نې-دَون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع اريانېدونكي- مؤنث اريانېدونكې- وګورئ حېرانېدل-

اريانېدهٔ:(اَر-يا-نې-دَهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانېدل-

اريانړ:(اَر-يانړ)اسم صفت- واحد- مذكر- هغه اواره خر چې خرو پسې ګرځي-

ارى بيرى:(اَ-رى-بى-رى)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اصل معنى اخوا ديخوا- (۲)دَ ماشومانو يوه لوبه- كوكړے- شلغاتې- شغلاتې- ټوپنې-

اريپ:(اَ-ريپ)اسم- واحد- مذكر- (۱)دوست- ملګرے- رفيق- (۲)حريف- دَ جوارۍ ملګرے- جمع اريپان- مؤنث اريپه- (م- حريف)-

اريچه:(اَ-رى-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ريچه- جمع اريچې-

اريږ:(اَ-ريږ)اسم- واحد- مذكر- (۱)دَ اَرټ دَ بياستو تر مينځه لرګے- (۲) يو قسم متّائي-

اريړه:(اَ-رى-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هليله- يوه مېوه چې پهٔ دارو كښې پكارېږي- نباتاتي نوم ترمي نيلياچيبولا(TERMINALIA CHEBULA)- (۲)دَ پرتوغانو سر ته يو خاص قسم غټه- جمع اريړې-

اريرى:(اَ-رى-رى)اسم- جمع- مؤنث- هغه واړهٔ واړهٔ لرګى چې دَ اَرټ پهٔ بياسته كښې انډول وى او لوټكى پرې پورې تړلے شي-

اريشت:(اَ-ريشت)اسم- واحد- مذكر- (۱)اختلاف- مخالفت- اصرار- (۲)زور- (۳)تاكيد- ټينګار-

اريک شريک:(اَ-ريک-شه-ريک)اسم- مل- شراكت دار- شريک-

اريكېن:(اَ-رى-كېن)اسم- واحد- مذكر- لال ټېن- لاټېن- (م- انګريزي هرى كېن)-

ارينائے:(اَ-رى-نا-ئے)اسم- واحد- مذكر- پُل- پايه-

اريومے:(اَر-يو-مے)اسم- جمع- مؤنث- رومبى- ربمې- دَ بُنيادم لهٔ نامه لاندې ويښتهٔ- فرض- (م- هندى- رواں)-

اريئے:(اَر-نيے)اسم- واحد- مذكر- (۱)اررے- لكى زر ګډ- (۲)وچه ترشه سبزى چې رواش ورته وائى-

ارى:(اَ-رى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لور- كاترى- غابن لرونكے لور-

ارى:(اَ-رى)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ ايرى-

ارى بارى:(اَ-رى-با-رى)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ ايرى بارى-

ارے:(اَ-رے)اسم- واحد- مذكر- لكى لرونكے پسهٔ- جمع ارى-

اړ:(اَړ)اسم- واحد- مذكر- (۱)ايسارتيا- بندېز- پابندى- (۲)پنائى- (۳)شرط-

اړ:(اَړ)اسم صفت- واحد- مذكر- محتاج- پامته دار- موتازه- ګېر-

اړ:(اَړ)اسم- اهاړ- دَ بكرمى كال ډېرمه مياشت-

اړ:(اَړ)اسم- واحد/جمع- مذكر- دَ ځنګلى لرګو كاروبار- اير- مير-

اړ:(اَړ)اسم- واحد- مذكر- ېږل كونكے- منع كونكے-

اړ:(اَړ)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)بَد- شوخ- وارخطا- (۲)ايسار- (۳)ښكر اړمونه (اسم)-

اړ:(اَړ)اسم- واحد- مذكر- (۱)بُغض- كينه- حسد- ضد- (۲)پېچش- نس خوږے- (۳)دُښمنى- (۴)معمه- قيصى اچونه- (۵)اپوتائے-

اړا:(اَ-ړا)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)شوخ چشم- (۲)ابېرژن- (۳)وارخطا- سودائى-

اړام:(اَ-ړام)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)سپين ستركے- بې باكه- شوخ ستركے- (۲)شيطان-

اړامكے:(اَ-ړام-كے)اسم تصغير- واحد- مذكر- جمع اړامكي- (۱)كُنده- مچك- (۲)دَ اړم اسم تصغير-

اړامنه:(اَ-ړام-نه)اسم- مؤنث ګستاخى-

اړاند:(اَ-ړاند)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)مشغول- اخته- بلَد- نښتے- ګېر- لګيا- هراند- (۲)پهٔ جنګ شوے-

اړاړ:(اَ-ړاړ)اسم- واحد- مذكر- (۱)پهٔ اَبو كښې كېدونكے دَ نمريز ويلنى پهٔ شان يو سور رنګے بوټے- پلپلک- جوراب- (۲)زياتے- ډېروالے-

اړاو دوړ:(اَ-ړو-دوړ)اسم- (۱)تېزى- تندى- (۲)جنګ جګړه- بلوه-

ي (ځي-رَل)، ې (مې-ره-وَل)، ئ (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

اړانی:(اَ-ړا-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مُحتاجی- (۲)قحط-

اړاېستل:(اَړ-اېس-تَل)مصدر- (۱)مجبورول- اړکول- ایسارول- بندول- راګېرول- (۲)پهٔ کوړکۍ، دام، لومه وغېره کښې دَ مارغانو نیول-

اړاېستلے:(اَړ-اېس-تهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع اړاېستلی- مؤنث اړاېستلې- وګورئ اړاېستل-

اړاېستن:(اَړ-اېس-تَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اړاېستل-

اړاېستنګ:(اَړ-اېس-تَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اړاېستل-

اړاېستونکے:(اَړ-اېس-تُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اړاېستونکی- مؤنث اړاېستونکې- وګورئ اړاېستل-

اړاېسنهٔ:(اَړ-اېس-تهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ اړاېستل-

اړباسل:(اَړ-با-سَل)مصدرِ متعدی- مجبوره کول- مجبورول- موتازه ول- کارته تېنکول- پهٔ زور لګیا کول- څهٔ خبرې ته نیول-

اړباسلے:(اَړ-با-سهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع اړباسلی- مؤنث اړباسلې- وګورئ اړباسل-

اړباسن:(اَړ-با-سَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اړباسل-

اړباسنګ:(اَړ-با-سَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اړباسل-

اړباسونکے:(اَړ-با-سُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اړباسونکی- مؤنث اړباسونکې- وګورئ اړباسل-

اړبنګ:(اَړ-بنګ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)بې پروا- (۲)اړتاوُک- (۳)کم عقل- کاواک- بړبنګ- بکواسی- بې وقوف- بې حیا- (۴)ښکلے- ښائسته-

اړبه:(اَړ-به)اسم- واحد- مذکر- شپون- مؤنث اړبنه-

اړبې اړبې:(اَړ-بې-اَړ-بې)صفت- خواره- بې وازدې- چیچړې- دَ غوښې سره ونښلے شی-

اړپ:(اَ-ړپ)امر- چپ- دَ چپ کولو لهٔ پاره حکم-

اړپی:(اَړ-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)سنګار بکس- (۲)دَ کالو دَ ایښو صندوقچے- (۳)یوه دروازه لرونکے کور چې پېر محفوظ وی-

اړت:(اَ-ړت)اسم- واحد- مذکر- چړنجه- تکه- خړنجه- اخلال-

اړت:(اَ-ړت)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ منډۍ کښې دَ مال دَ مزدورۍ اړت یا دړ- دستور- دَ منډۍ کاروبار- (هندری- اړهت)-

اړتاؤ:(اَړ-تاؤ)اسمِ مفعول/صفت- مذکر- ارتاؤ- پرېوتے- غرخېدلے- نسکور- پړمخ- پړتاؤ-

اړتاوُک:(اَړ-تا-وُک)اسمِ صفت- اړتاویز- بې فکره- کاواک- ارتاوز- مؤنث اړتاؤکه- جمع اړتاوکی-

اړتاوکه:(اَړ-تا-وهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- سرسری- مسې- قیاسی- جمع اړتاوکې-

اړتاوکې:(اَړ-تا-وهٔ-کې)جمع- مؤنث- واحد اړتاوکه- بابړې- دَ دروغو دوزې- اړتاویزې- فضول خبرې- بې واکه خبرې-

اړتاوول:(اَړ-تا-وه-وَل)مصدر متعدی- غرخول- ګوزارول-

اړتاوون:(اَړ-تا-وه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اړتاوول-

اړتاوونکے:(اَړ-تا-وه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اړتوونکی- مؤنث اړتاوونکې- وګورئ اړتاوول-

اړتاوونګ:(اَړ-تا-وه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اړتاوول-

اړتاوونه:(اَړ-تا-وه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اړتاوول-

اړتاوے:(اَړ-تا-وے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- مجبور- بې وسه-

اړتاویز:(اَړ-تا-ویز)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ اړتاوُک-

اړتاویزې:(اَړ-تا-وی-زې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ اړتاوکې-

اړتاوېدل:(اَړ-تا-وې-دَل)مصدرِ لازم- پرېوتل- غُرزېدل- ګوزارېدل-

اړتاوېدن:(اَړ-تا-وې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اړتاوېدل-

اړتاوېدنګ:(اَړ-تا-وې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اړتاوېدل-

اړتاوېدنه:(اَړ-تا-وې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اړتاوېدل-

اړتاوېدونکے:(اَړ-تا-وې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ اړتاوېدل-

اړتاوېدهٔ:(اَړ-تا-وې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ اړتاوېدل-

اړت خوړت:(اَ-ړت-خ-ړت)اسمِ صفت- وګورئ اړتو پړتو-

اړت دړت:(اَړت-دَړت)اسم- واحد- مذکر- پهٔ منډۍ کښې دَ اړتی او دَړوانی خرڅه-

اړت غوړت:(اَ-ړت-غ-ړت)اسمِ صفت- وګورئ اړتو پړتو-

اړتوب:(اَړ-توب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- اړتیا- موتازی- اړی- اړیا کېدنه- مُوتازه کېدنه- ضرورت-

اړتو پړتو:(اَړ-تُو-پُړ-تُو)صفت- مذکر- اړت خوړت- ټکی برکی- هغه دغه- بې مطلبه- بې معنې- انې بانې- تپال متپول- یو غر بل غر- بد نظمی- اړیته خړیته- اړت غوړت-

اړتوکے:(اَړ-تو-کے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بې شرمه- بې لحاظه- سپین سترکے- بې حیا- اړام-

اړتی:(اَړ-تی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ اَړت کار کونکے- پهٔ اُجرت، کمېشن، فیس وغېره دَ خلقو او سوداګرانو مالونه خرڅونکے- دلال- اېجنټ- دړوانی- سوداګر-

اړتیا:(اَړ-تیا)اسم- مؤنث- (۱)اړانی- محتاجی- (۲)قحطی- وګورئ اړتوب-

اړتېب:(اَړ-تېب)اسم- واحد- مذکر- اتوب- لېټی- شیره- نرمه حلوا- اتېب- لېوی-

اړخ:(اَ-ړخ/اَړخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوا- طرف- پلو- ډډه- څنګ- (۲)دَ تخرګ او پوړۍ تر مېنځه ځای- (۳)احتیاط- دَ ځان لرې ساتنه-

اړخ پهٔ اړخ:(اَ-ړخ-پهٔ-اَ-ړخ)مُرکّب- (۱)غاړه پهٔ غاړه- (۲)څنګه پهٔ څنګه- څنګ پهٔ څنګ-

اړخدار:(اَ-ړخ-دار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- غاړه لرونکے- اړخېز-

اړخک:(اړ-خک)اسم- (۱)ښکار دَ کُړکی لوری ته شړنه- (۲)اړونه-

اړخن:(اړ-خن)اسم صفت- واحد- مذکر- اړخیز- طرفونه لرونکے- اړخدار-

اړخیز:(اَړ-خیز)اسم صفت- واحد- مذکر- طرفونه لرونکے- اړخن- اړخدار-

اړخیزه:(اړ-خی-زه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)اړخ لرونکې- اړخنه- (۲-اسم)- لهٔ یو خوا- کږه خبره- طرف ژنه خبره- لهٔ یوه طرفه- جمع اړخیزې-

اړخیزه تماچه:(اَړ-خي-زه-تـه-ما-چه)اسم- واحد- مؤنث- هغه تماچه چې کاږینی يُ دَ ږکولو دَ پاره یو اَړخ ته وځی-

اړخی:(اَړ-خی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ غرهٔ لمن پهٔ ترغ زمکه- دَ غرهٔ پټے- بوږیٔ- بکلے- لوړیږ- (۲)برنی ښتی-

اړداوه:(اړ-دا-وه)اسم- واحد- مؤنث- وکوریٔ ارداوه- (م- فارسی ارد- اوړهٔ-اوه ابهٔ)-

اړدنے:(اَړ-دهٔ-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- خرڅ کونکے- صارف-

اړدو:(اَړ-دو)حرف- پهٔ دوو کښې- دواړه-

اړښه:(اَړ-ښه)اسم- واحد- مؤنث- جمع اړښې- (۱)پَټه- پله- (۲)سپینه-

اړک:(اَ-ړک)اسم صفت- واحد- مذکر- نـاړامه- ضدی- مؤنث اړکه- جمع اړکې-

اړکینه:(اَړ-کی-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ لرکی ناوه- جمع اړکینې-

اړکیدل:(اَړ-کې-دل)مصدر/فعل لازم- (۱)مُحتاجه کېدل- مشغولېدل-(۲)ایسارېدل-

اړکېدن:(اَړ-کې-دن)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړکېدل-

اړکېدنګ:(اړ-کې-دنګ)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړکېدل-

اړکېدنه:(اَړ-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړکېدل-

اړکېدونکے:(اَړ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړکېدونکی- مؤنث اړکېدونکې- وکوریٔ اړکېدل-

اړکېدهٔ:(اَړ-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړکېدل-

اړکی:(اَړ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کوړکی- لټ- ښکر- دام- (۲)لینګته- (۳)بندش-

اړکی:(اړ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه لرګے چې پهٔ چت کښې بل لرګے ایسار کړی-

اړکی:(اړ-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ کوڅې یا لارې هغه غاړه چې بلې کوڅې پله تاؤ شی-

اړکے:(اَړ-کے)اسم- واحد- مذکر- جمع اړکی- (۱)ژغونړے- (۲)دَ اندرپانې پاتکے- دَ پوړی پایه- (۳)دَ رباب غوړے- (۴)دَ کوټې دَ تیر ستن- (۵)اَړم- دَ یو څیز دَ ټینګولو دَ پاره بله اَسره- (۷)غرګه- کړی- لاړے- لهړے- برګه-

اړکے:(اَ-ړه-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لرګی هغه تخته چې دَ اوبدلو پهٔ وخت کښې دَ تنستې پهٔ مینځ کښې ښکته پورته ځی او دَ هغې پهٔ وجه تنسته کښې تار ځایُ نیسی- (۲)دَ لرګی هغه تخته یا تختې چې پهٔ

اړوتونکے:(اړ-وه-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړوتونکی- مؤنث اړوتونکې- وکوریٔ اړوتل-

اړوتهٔ:(اړ-وه-تهٔ)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړوتل-

اَړو دوړ:(اَ-ړو-دُوړ)اسم- واحد- مذکر- هله ګله- بدلون- انقلاب-

اړوښتے:(اَ-ړوښ-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- بچت- جمع واری- پنګه او زبرمه- پاسره- پانګه-

اړوک:(اَ-ړوک)اسم- واحد- مذکر- بُغض- کینه- دښمنی- ضد- جمع اړوکونه- غچ- میرڅی-

اړول:(اَ-ړه-ول)مصدرِ متعدی- (۱)لاندې نه باندې یا بره نه لاندې کول- (۲)پهٔ بل مخ کول- (۳)تـاوه ول- (۴)نېغول- (۵)لهٔ یوې لارې نهٔ پهٔ بله کرځول- (۶)دَ څهٔ مایَع څیز غُرځول- (۷)کږه چوکول- (۸)یوې کول- (۹)لهٔ خپله ځایه بې ځایه کول- (۱۰)دَ ښې یا لاس اړوکے پهٔ زور بې ځایه کول-

اړول راړول:(اَ-ړه-ول-را-ړه-ول)مصدر- (۱)اپوټه سپوټه کول- (۲)لاندې باندې کول- (۳)ګډوډکول- (۴)بې ترتیبه کول- (۵)پړمخ کول- (۶)اصرار سره ښتنه کول-

اړولے:(اَ-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اړولی- مؤنث اړولې- وکوریٔ اړول-

اړون:(اَ-ړه-ون)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړول-

اړون:(اَ-ړون)اسم- مذکر- (۱)احتیاج- ضرورت- موتـازه کېدنه- (۲)لېټی- متیانی- شیرینی-

اړون تړون:(اَ-ړُون-تـه-ړون)اسمِ مرکب- واحد/جمع- مذکر- (۱)تعلق- رشته- خپلولی- (۲)وعده- لوظ- قول-

اړونج:(اړ-ونج)اسم- واحد- مذکر- (۱)ستن- ستنې- مټه- تمبه- خنډ- (۲)اساس- بُنیاد- بنسټ- بېخ- وېخ- (۳)پایه- مقام- جمع اړونجونه-

اړونج:(اړ-ونج)اسم- واحد- مذکر- پېچېدګی-

اړوند:(اَړ-وند)اسم صفت- واحد- مذکر- وکوریٔ اړاند- جمع اړوندې- مؤنث اړونده- جمع مؤنث اړوندې-

اړونس:(اَړ-ونس)اسم- واحد- مذکر- ناوې سره پهٔ داج کښې راغلې ګډه-

اړونکے:(اَ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړونکی- مؤنث اړونکې- وکوریٔ اړول-

اړونګ:(اَ-ړه-ونګ)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړول-

اړونګ:(اړ-ونګ)اسم- شالنګ- یو څیز پهٔ بل معمولی شان تم کونه- ورته کونه- نژدې کونه-

اړونه:(اَ-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وکوریٔ اړول-

اړووشت:(اَ-ړو-وشت)اسم- جمع- مؤنث- اړوشت- اړیشت- تاؤ کړې خبرې- نېغې نېغې خبرې- اړوپېچ خبرې-

اړوونکے:(اَ-ړه-وون-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مختلفو لوبو دَ پاره

"ئ" (څی-ړل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وکوریٔ تشریحات صفحه ۱

اړنګ بړنګ:(اَ-ړَنګ-به-ړَنګ)اسم صفت- پریشان- حیران- بې بنده- بې وسه- وسواسي- سوداني- متردد- (۲)خر- خینګ- (۳)تش تور-

اړنګتي:(اَ-ړَنګ-ګه-تي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ پهلوانۍ پهٔ اصطلاح کښې یو داؤ چې پکښې دَ حریف دَ پښو تر مېینځه پښه ایښوے او حریف را ګوزارولے شي- ننګتي- اړنګي- ړنګتي- (م- هندي- اړنګا)-

اړنګ دوړنګ:(اَ-ړَنګ-دو-ړَنګ)اسم صفت- مذکر- (۱)بې تولې- (۲)کوږووږ-

اړنګ لاندے:(اَ-ړَنګ-لان-دے)اسم صفت- شکمن- شکي- مشتبه- اړنګمن-

اړنګ من:(اَ-ړَنګ-مَن)اسم صفت- شکي- شکمن- اړنګ لاندے-

اړنګو بړنګو:(اَ-ړَنګ-ګو-به-ړَنګ-ګو)اسم صفت- شالي والي- کوږووږ- شاړي واړي- پهٔ تالو- شاولي واولي-

اړنګي:(اَ-ړَنګ-ګي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اړنګتي-

اړو:(اَ-ړو)اسم- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- مغه ښاروے چې پهٔ ځنګل کښې واش لوئ شوے وي-

اړوالے:(اړ-وا-لے)اسم- وګورئ اړتیا-

اړوب:(اَ-ړوب)اسم- واحد- مذکر- (۱)لېټې- اړوبے- اتوب- (۲)نرمه- نرۍ خټه- چیکړ- اخټې- خړوب- ګړوبے- (۳)بې خونده پخکړے-

اړوب خړوب:(اَ-ړوب-خه-ړوب)اسم صفت- لوند خویشت- لیت پیت- بېر لوند- پهٔ خټو اَبو لړلے- بڼهٔ پڼه شوے- خوشت پوشت-

اړوبے:(اَ-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارداوه-

اړوپړ:(اَ-ړو-پړ)صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)لکه دَ پړی یو بل سره نښتے- (۲)نښتے- (۳)پړ مخ- اپوته-

اړوپچے:(اَ-ړو-پې-چے)اسم- (۱)ګړ وړ کنډنه- (۲)دَ جنګ جګړې خبرې- کړې وړې خبرې-

اړوپېچ:(اَ-ړو-پېچ)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)اړوپړ- تاؤ راتاؤ- اړاوپېچ لړونکے- کوږووږ- کوږواکوږ- (۲)ګران- (۳)غُټې غُټې- کاږهٔ واږهٔ-

اړوت:(اَ-ړوت)اسم صفت- واحد- مذکر- تریخ- بَد خویه- غصه ناک-

اړوتړ:(اَ-ړو-تړ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تړون- موافقه- وعده- عهد- (۲)چل- تېر ورکونه-

اړوت خړوت:(اَ-ړوت-خه-ړوت)اسم صفت/مرکب- وګورئ اړیته خړیته-

اړوت غروت:(اَ-ړَوت-غَ-ړَوت)صفت مُرکب- حیلې بازې- اپې بانې- چَل ول- مغه دغه- اړیته خړیته-

اړوتل:(اړ-وه-تَل)مصدر- موتازه کېدل- محتاجه کېدل- پامته داره کېدل- ګېرېدل- ایساربدل- مجبورېدل- حیرانېدل- اړکېدل- بندېدل-

اړوتلے:(اړ-و-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اړوتلي- مؤنث اړوتلې- وګورئ اړوتل-

اړوتن:(اړ-وه-تَن)حاصل مصدر- وګورئ اړوتل-

اړوتنګ:(اړ-وه-تَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اړوتل-

اړوتنه:(اړ-وه-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اړوتل-

ماتو هډوکو پورې تړلے شي- (۲)مغه لرګے چې دوه برغه رسی تر مېنځه ئې دَ بار تړلو دَ پاره اچوي-

اړکے اړکے:(اَړ-کے-اَړ-کے)صفت- مات شوے- ټوټې شوے- وران ویجاړ-

اړکے:(اَړ-کے)اسم- واحد- مذکر- بیزګورے- ورے- ورغومے- جمع اړکي-

اړم:(اَ-ړَم)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)الګیا- مصروف- پهٔ څهٔ کار کښې اخته- پهٔ جنګ- (۲)سرکش- سرزورے- (۳)نښتے- انډول-

اړم:(اَ-ړَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)غټ لرګے یا اُسپنه چې دَ دروازې شاته دَ مظبوطۍ دَ پاره ایښوے شي- (۲)درد- پېچ-

اړمکے:(اَ-ړه-مه-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ژرندې دَ پلهٔ لرګے- دَ ګاټې اړم- (۲)دَ کوبه لرګے- (۳)ړندا- جمع اړمکي-

اړمول:(اَ-ړه-مه-وَل)مصدر متعدی- (۱)الګیا کول- مصروفول- پهٔ څهٔ کار کښې اخته کول- (۲)پهٔ جنګ کول- نښلول- (۳)دَ څهٔ څیز غیر معمولی چوکه کول- (۴)پېچ کول- (۵)انډول کول- (۶)سرزوری کول-

اړمون:(اَ-ړه-مه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اړمول-

اړمونکے:(اَ-ړه-مه-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړمونکي- مؤنث اړمونکې- وګورئ اړمول-

اړمونګ:(اَ-ړه-مه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اړمول-

اړمونه:(اَ-ړه-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اړمول-

اړمېدل:(اَ-ړه-مې-دل)مصدر لازم- (۱)الګیا کېدل- مصروفېدل- پهٔ څهٔ کار کښې اخته کېدل- (۲)جنګېدل- (۳)دَ څهٔ څیز غیر معمولی چوکه کېدل- (۴)انډول کېدل- (۵)پېچ کېدل- (۶)سرزوری کېدل-

اړمېدن:(اَ-ړه-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اړمېدل-

اړمېدنګ:(اَ-ړه-مې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اړمېدل-

اړمېدنه:(اَ-ړه-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اړمېدل-

اړمېدونکے:(اَ-ړه-مې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړمېدونکي- مؤنث اړمېدونکې- وګورئ اړمېدل-

اړمېدهٔ:(اَ-ړه-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اړمېدل-

اړمے:(اَ-ړه-مے)اسم- واحد- مذکر- دَ دروازې دَ بندولو لرګے- اَړم- جمع اړمي-

اړناوی:(اړ-نا-وی)اسم- واحد- مذکر- دولت- بډائي- شتهٔ مني-

اړندے بړندے:(اَ-ړَن-دے-به-ړَن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- اړندے کړندے- (۱)تندرست- صحت مند- (۲)چلت- چابک- چټک- بیړندے- (۳)پهٔ تړوه- پهٔ تراټ- پهٔ پوبه- پهٔ روال-

اړندے کړندے:(اَ-ړَن-دے-ګه-ړَن-دے)اسم صفت- مذکر- وګورئ اړندے بړندے-

اړنګ:(اَ-ړَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)وریځ- جمع اَړنګونه- (۲)انار- اولنګ- اوننګ- اننګورے- انارګورے-

اړنګ:(اَ-ړَنګ)اسم- واحد- مذکر- وسواس- تردد- شک-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-بې-دهٔ)

یو نوم چې لاندې لیکلی لوبې پکښې اممې دی (۲)دَ پېړیو شپیشتو لوبه، (۳)دَ زمرې لوبه، (۴)درې گټې، (۵)ړنده خره، (۶)بلوله، (۷)بړاسکے- (۸)لهٔ اړول مصدر نه اسمِ فاعل-

اړوونی:(اَړ-وو-نی)اسم صفت- واحد- مؤنث- بازیگره کونتره- اړونې کونتره- ټپټی کوتره- لټ پټی-

اړه:(اَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خواست- غُښتنه- (۲)ضرورت- حاجت- منّت- سوال- (۳)ضد- خودسری- (۴)مُراد- (۵)اړی- د "اړه" دویمه لهجه- (۶)نښتے- (۷)گډه- (۸)مېړه-

اړه:(اَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بندېز- بندښت- بند- (۲)تعلق- رابطه- (۳)ایساریدنه-

اړه:(اَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټوکرې- شکرې- کسرائی- کاره- تتی- پېمانه- (۲)دَ استانه دارو یا استکارانو د فصل پهٔ سر عوضانه- ترون- ماوود- (۳)سو- پهٔ برخه زمکه ورکونه-

اړه تړه:(اَ-ړه-تَه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- تیارے- سمبالونه- سمونه- بندوبست- وهنه- ترنه-

اړه کوړه:(اَ-ړه-کو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- الَه گوله- غلبله- شورزوږ- بد انتظامي- اړے گړے-

اړه مار:(اَ-ړه-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چاری کار-چړے کار- پهٔ برخه زمکه کرونکے- (۲)اړه اخستونکے- ستانه دار-

اړه ماری:(اَ-ړه-ما-ری)اسم- واحد- مؤنث- چاری کاری- چړے کار- پهٔ برخه زمکه کرنه-

اړو ومانده:(اَ-ړه-وَ-مان-ده)اسم صفت- مؤنث- حاجت- ضرورت- اړتیا- موتازي- تنکسیا-

اړی:(اَ-ړي)اسم- جمع- مؤنث- ټوسے- دَ ملکانو یوه لوبه چې پهٔ ړرو ړرو ژغنړیو يې کوی-

اړی:(اَ-ړي)اسم- وګورئ اړه-

اړی:(اَ-ړي)اسم- واحد- مؤنث- موتازي- ضرورت- صرفه- خوامش- حاجت- غښتنه- غواړنه-

اړی:(اَ-ړي)اسم- مؤنث- ضد- خبل- دَ تک پهٔ وخت دَ ځاروی اروپېڅ-

اړیا:(اَړ-یا)اسم صفت- (۱)حاجت من- موتازه- مجبور- (۲)بند- (۳)جنگ نښته- لاس لگونه- (۴)گډ-

اړیا:(اَړ-یا)اسم صفت- واحد- مذکر- نښتے- امېر چمبړ- اړم-

اړیا:(اَړ-یا)اسم صفت- واحد- مؤنث- مغه مېښه چې گرمه شوي وی- چې واري راوړے وی-

اړیت خوریت:(اَ-ړي-تَ-خو-ړي-تَ)اسم- وګورئ اړت خورت-

اړیته خریته:(اَ-ړي-ته-خه-ړي-ته)اسم مُرکّب- ورانے- څڅ خبره ورانونه- خنړ اچونه- اړوت خروت- خریته- افراتفري- گډوډی- بد نظمي-

اړیخے:(اَ-ري-خے)اسم- واحد- مذکر- دَ آرام کولو ځاي-

اړیر:(اَ-ړیر)صفت- نژدې-

اړیز:(اَ-ړیز)اسم- مذکر- تکیه-

اړیژن:(اَ-ري-ژن)صفت- وګورئ اړیمار-

اړیسه:(اَ-ري-سه)اسم صفت- وروست- خوړین-

اړیشت:(اَ-ړیشت)اسم صفت- وګورئ اَرووشت-

اړی گډه:(اَ-ړي-گَ-ډه)اسم- تعلق- لېن دېن-

اړیم:(اَ-ړیم)اسم صفت- پهٔ لامبلو کښې دَ لوبو پهٔ ړول پهٔ یو بل اُبهٔ اچونه- اُبهٔ چپې کونه- اُبهٔ نُستنه- دَ اُبو جنگ کونه- ایلے- آب بازی-

اړیمار:(اَ-ري-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بارکښي کوړلرگے- اړی کونکے- (۲)اړی کونکے اَس- مؤنث اړیماره- جمع مؤنث اړیمارې-

اړیماره:(اَ-ري-ما-ره)اسم- واحد- مؤنث- اړی کونکې اَسپه- جمع اړیمارې-

اړیماری:(اَ-ري-ما-ري)اسم- (۱)دَ اَس یا اسپې دَ اړی کولو حالت- (۲)دَ لانجې مار سړي دَ لانجې جوړولو عادت-

اړین:(اَ-ړین)صفت- واحد- مذکر- تابع- ضروری-

اړینکو بړینکو:(اَ-ړین-کو-بَ-ړین-کو)اسم صفت- جمع- مذکر- وګورئ اړنکو بړنکو-

اړینه:(اَ-ري-نه)اسم- اړیسته- اُړتیا- اُړون-

اړیه:(اَ-یه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)دَ دوو پُولو پهٔ مېنځ کښې وُړه زمکه- اړے- لیکی- نری- جمع اړیُې- (۲)گرفتاری (اسم)-

اړیه:(اَ-یه)اسم- واحد- مذکر- اختلاف- نښته- برخلافی- جمع اَړیُې-

اړییا:(اَ-ري-یا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ضد کوونکے- اختلاف لرونکے- (۲)فرق کوونکے-

اړې بکړې:(اَ-ړې-بَک-ړې)اسم- جمع- مؤنث- دَ ماشومانو لوبه چې دَ سپوږمې پهٔ رڼا کښې کیږي یو پکښې بکیاړشی او نورې گډې گډې ځان ژغوری او شرمځ يې دَ را نیولو کوشش کوی-

اړېجی:(اَ-ړې-جي)اسم- جمع- مؤنث- شېطاني- ورانے- وران کاری-

اړېدل:(اَ-ړې-دل)مصدر- (۱)لهٔ یوې خبرې اوښتل- منع کېدل- (۲)تونېدل- (۳)دَ اُبو مخ گرځېدل- (۴)توپ وهل-

اړېدل:(اَ-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)محتاجېدل- اړکېدل- کړیابېدل- بې وسه کېدل- (۲)بندېدل- ښندېدل- (۳)مجبورېدل-

اړېدلے:(اَ-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اړېدلی- مؤنث اړېدلې- وګورئ اړېدل-

اړېدن:(اَ-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اړېدل-

اړېدنگ:(اَ-ړې-دَنگ)حاصل مصدر- وګورئ اړېدل-

اړېدنه:(اَ-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اړېدل-

اړېدونکے:(اَ-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړېدونکی- مؤنث اړېدونکې- وګورئ اړېدل-

اړېدهٔ:(اَ-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اړېدل-

ئ" (ځې-رَل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لې)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

اړېړی:(اَ-ړي-ړی)مؤنث- وګورئ اړېړی-
اړېستل:(اَ-ړېس-تَل)مصدر- موتازه کېدل- ناچاره کېدل-
اړېستن:(اَ-ړېس-تَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اړېستل-
اړېستنګ:(اَ-ړېس-تَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اړېستل-
اړېستنه:(اَ-ړېس-تَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اړېستل-
اړېستونکے:(اَ-ړېس-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اړېستونکی- مؤنث اړېستونکې- وګورئ اړېستل-
اړېستهٔ:(اَ-ړېس-تهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ اړېستل-
اړېکے:(اَ-ړي-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)تړون- رشته- ملګرتیا- (۲)دَ دروازې اَړم- (۳)بندېز- (۴)قبض کېدنه- (۵)هغه لرګے چې دَ اَرټ پهٔ چکر کښې لوټکے یا دروازې ایساروی- جمع اړېکی-
اړی:(اَ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پیاړمه- پچاړی- پچواړی- ړوبک- (۲)دَ پټو پوله- (۲)دَ سسپار مُوټے-
اړی:(اَ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مېښه-
اړی:(اَ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مقابله-
اړے:(ا-ړے)اسم- جمع- مذکر- اوړهٔ-
اړے:(ا-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اوړے- جمع اړی-
اړے:(اَ-ړے)اسم- واحد- مذکر- جمع اَړی- اَړم- هغه لرګے چې څهٔ څیز ته دَ پښتی پهٔ غرض ودرولے شي-
اړے ګړے:(اَ-ړے-ګَ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)انقلاب- غوبمنېږ- (۲)شور و غوغا- غوبل- (۳)بدامنی- ورانے- بلوه- شوروشر- (۴)ګربړ- هله ګله- باچاګړدی-
ازاد:(اَ-زاد)اسم صفت- واحد- مذکر- ازادې- (۱)پخپله ټوکېدلے بوټے- خودرو- (۲)دَ غلام ضد- اصیل- دَ خپل واک خاوند- خُشے- ایله- (۳)خلاص- (۴)صفا- (۵)ارت- بې تکلفه- مؤنث ازاده-
ازادانه:(اَ-زا-دا-نه)متعلق فعل- بې بندېزه- بې قېده- بې تکلفه-
ازادخیال:(اَ-زاد-خیَال)اسم صفت- (۱)دَ ارت زړهٔ خاوند- (۲)هغه څوک چې مذهبی او رسمی معاملو کښې تنګ نظر نهٔ وی- جمع ازادخیالی- مؤنث ازادخیاله- جمع/مؤنث ازادخیالې-
ازادخیالی:(اَ-زاد-خیا-لي)اسم- بې باکی-
ازادطبع:(اَ-زاد-طه-بَع)اسم صفت- ازادخیال- لهٔ پابندیو آزاد-
ازادطبیعت:(اَ-زاد-طَ-بی-عَت)اسم صفت- خوش اروا- دَ ښې طبعې خاوند-
ازادګی:(اَ-زا-ده-ګي)اسم- آزادی- خلاصے- بې قېدی-
ازادې:(اَ-زا-دې)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ آزاد-
ازادول:(اَ-زا-دَ-وَل)مصدر/فعل متعدی- پرېښول- خلاصول- لهٔ قېده خُشے کول- رخصتول-
ازادون:(اَ-زا-دَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ازادول-
ازادونکے:(اَ-زا-دَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ازادونکی- مؤنث ازادونکې- وګورئ ازادول-
ازادونګ:(اَ-زا-دَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ازادول-
ازادونه:(اَ-زا-دَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ازادول-
ازاده:(ا-زا-ده)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)دَ ازاد مؤنث- (۲)دَ خپل مخ- دَ خپلې خوښې- دَ خپلې رضا- (۳)پرېښودے شوې ښځه- طلاقه شوې ښځه- (۴)بداخلاقه ښځه- بې تکلفه ښځه-
ازادی:(اَ-زا-دی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خلاصے- (۲)رهائی- (۳)دَ قېدوبند، مرګینتوب یا دَ بل دَ واک نه وتنه- (۴)بې تکلفی- (ش- فارسی)-
ازادېدل:(اَ-زا-دې-دَل)مصدر لازم- خلاصېدل- دَ بند نه وتل- بې غمه کېدل-
ازادېدن:(اَ-زا-دې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ازادېدل-
ازادېدنګ:(اَ-زا-دې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ازادېدل-
ازادېدنه:(اَ-زا-دې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ازادېدل-
ازادېدونکے:(اَ-زا-دې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ازادېدونکی- مؤنث ازادېدونکې- وګورئ ازادېدل-
ازادېدهٔ:(اَ-زا-دې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ ازادېدل-
ازار:(اَ-زار)اسم- واحد- مذکر- (۱)رنځ- کړاؤ- ربړ- تکلیف- ضرر- (۲)مرورتوب- خفګان- (۳)وبال- ښېره-
ازاربند:(اَ-زار-بَند)اسم- (۱)کړېدلے- (۲)پرتوغاښ-
ازاردبه:(اَ-زار-ده-به)اسم- وګورئ ازاربه-
ازاربه:(اَ-زار-بِه-به)اسم- دَ ماشومانو یوه بیماری- ازاردبه-
آزارغونړے:(آ-زار-غون-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- چې خلق آزاروی- بدزوانے- آزار ګټلے-
ازارګټلے:(اَ-زار-ګَ-ټهٔ-لے)اسم فاعل- واحد- مذکر- موذی- ضرر رسان- جمع ازارګټلی-
ازارول:(اَ-زا-رَ-وَل)فعل متعدی- تکلیف ورکول- عذابول- کړول-
ازارون:(اَ-زا-رَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ازارول-
ازارونکے:(اَ-زا-رَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ازارونکی- مؤنث ازارونکې- وګورئ ازارول-
ازارونګ:(اَ-زا-رَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ازارول-
ازارونه:(اَ-زا-رَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ازارول-
ازاروهلے:(ا-زار-وَ-ههٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- پهٔ ښېرو ککړ- ښېرو وهلے- جمع اَزاروهلی- مؤنث اَزاروهلې-
ازاری:(اَ-زا-ري)اسم صفت- پهٔ ښېرو ککړ- موذی- ناروغه- جمع ازاریان-
ازارېدل:(اَ-زا-رې-دَل)مصدر- دردېدل- کړېدل- عذابېدل- تکلیف رسېدل-
ازارېدلے:(اَ-زا-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ازارېدلی- مؤنث ازارېدلې- وګورئ ازارېدل-
ازارېدنه:(اَ-زا-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ازارېدل-
ازارېدونکے:(اَ-زا-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ازارېدل-

ازارېدهٔ:(ا-زا-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ ازارېدل-

ازاله:(أ-زا-له)اسم- واحد- مؤنث- زائلونه- لرې کونه- ورانونه-

ازانګه:(ا-زانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)انګې- انګازه- راتمبېدلے اواز- رونګ غنګ- (۲)بزېدنه- زېېدنه- جمع ازانګې- دَ انګځه ضد-

ازباد:(از-باد)اسم- اباډول- زباډېل- نوے کار کونه- کلے يا ښار اباډونه-

ازباډول:(اَز-با-ډَ-وَل)مصدر- اباډول- زباډول- نوے کار کول- کلے يا ښار اباډول-

ازباډېدن:(از-با-ډې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ اَزباډول-

ازباډېدنګ:(از-با-ډې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اَزباډول-

ازباډېدنه:(از-با-ډې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اَزباډول-

ازباډېدونکے:(از-با-ډې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ازباډېدونکی- مؤنث ازباډېدونکې- وګورئ اَزباډول-

ازباډېدهٔ:(از-با-ډې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ اَزباډول-

ازبر:(از-بَر)حرف عطف- لهٔ پاره- لهٔ مخه- دَ پاره-

ازخ:(اَ-زخ)اسم- واحد- مذکر- زَخه- وړې وړې دانې چې دَ ګرمی دَ وجې نه پهٔ مخ راښکاره شی- خال- (م- فارسی)-

ازخوړے:(از-خو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو قسم ازغے- (۲- صفت)موذی يا آزاری- جمع ازخوړی-

ازدحام:(از-دِ-حام)اسم- واحد- مذکر- ګڼه ګوڼه- هجوم- دَ خلقو راټنډېدنه- ګڼه ګوڼه-

ازدواج:(از-دِ-واج)اسم- وادهٔ کونه- جوړه کېدنه- (م- عربی)-

ازدواجی:(از-دِ-وا-جی)اسم صفت- ازدواج سره متعلق-

ازرده:(اَ-زر-ده)اسم صفت- غمژن- ملول- غمګين- غمزده- دلګير- زهير- مرور- ناراض-

آزرم:(آ-زَ-رم)اسم- واحد- مؤنث- شرم- حيا- (۲)لونی- عزت- بزرګی- (۳)مينه- مهربانی- (۴)غم- اندوه- (۵)کړاؤ- لحاظ- خاطر- (۶)قهر- غضب- غصه- (۷)ګناه- (۸)ساتنه- (م- فارسی)-

ازغکے:(اَز-غه-کے)اسم- واحد- مذکر- يو ازغن بوټے چې ډېر تريخ وی او خنې داروګانو کښې پکاريږی- اغزکے- عربی کښې ورته شکاغی وائی- نباتاتی نوم اېسپونيکس ګرېسيلس (ASPUNIGUS GRACILIS) -

ازغن:(اَز-غن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ازغی لرونکے- (۲)ازغن بوټے- مؤنث ازغنه-

ازغوټے:(اَز-غو-ټے)اسم تصغير- واحد- مذکر- وړوکے ازغے- جمع ازغوټی-

ازغے:(اَز-غے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ بوټی يا ونې نه پهٔ تنه، پانه يا څانګه راختلې دَ ستنې پهٔ شان تېرهٔ حصه- اغزے- (۲)دَ کب لشه- (۳)دَ خنې خناورو لکه لمی سره راوتلې ستن- (۴)دَ شکانهٔ بنې-

ازګی:(از-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هېڅې- هېڅی- پېزې- پېزی- هجی- (م- عربی- هجه)-

ازل:(اَ-زَل)اسم- واحد- مذکر- د أبد ضد- دَ ماضی همېشګی چې ابتدائی حد يې نهٔ وی-

ازلی:(اَ-زهٔ-لي)اسم صفت- (۱)دَ خدایْ پاک يو صفتی نوم- قديمی- (۲)ازل- (۲)دَ ازل سره متعلق-

ازمار:(اَز-مار)صفت- مذکر- چَل وَل- انې بانې- مکر- حيله- فرېب- دوکه بازی-

ازمايښ:(اَز-ما-يښ)اسم- ازمېښت- تجربه- امتحان- (م- ازمائش فارسی)-

ازمايښت:(اَز-ما-يښت)اسم- وګورئ ازمايښ-

ازمايښی:(اَز-ما-يِ-ښی)اسم- دَ تجربې پهٔ ډول- دَ امتحان پهٔ طور- ازمائښ سره متعلق-

ازمايل:(اَز-ما-يل)مصدر- ازمېيل- ازمويل- تجربه کول-

ازمايلے:(اَز-ما-يهٔ-لے)صفت/مفعول- تجربه شوے- معلوم شوے- جمع ازمايلی-

ازماين:(از-ما-ين)حاصلِ مصدر- وګورئ ازمايل-

ازماينګ:(از-ما-ينګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ازمايل-

ازمايونکے:(اَز-ما-يون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- ازمېښت کونکے- تجربه کونکے- جمع ازمايونکی-

ازمايونے:(از-ما-يو-نے)اسم فاعل- وګورئ ازمايل-

ازماينه:(اَز-ما-يهٔ-نه)حاصلِ مصدر- ازمايښت- ازمايش- تجربه- وګورئ ازمايل-

ازمودل:(اَز-مو-دَل)مصدرِ متعدی- دَ معنې دَ پاره وګورئ ازمايل-

ازموده:(اَز-مو-ده)اسم صفت- ازمايلے- تجربه کړے شوے-

ازموده کار:(اَز-مو-ده-کار)اسم صفت- تجربه کار- پوهه- بلَد- خبر- پوه-

ازموېښت:(اَز-مو-يښت)حاصلِ مصدر- امتحان-

ازمويل:(اَز-مو-يل)مصدر- وګورئ ازمايل-

ازمويلے:(اَز-مو-يهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- (۱)ازمېښت شوے- کتلے شوے- (۲)کره کوټه معلومونه-

ازموين:(اَز-مو-ين)حاصلِ مصدر- وګورئ ازمويل-

ازموينګ:(اَز-مو-ينګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ازمويل-

ازموينه:(اَز-مو-يهٔ-نه)اسم- (۱)آزماينه- آزمايش- تجربه- (۲)حاصلِ مصدر دَ ازمويل-

ازمويونکے:(اَز-مو-يون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- تجربه کونکے- جمع ازمويونکی- مؤنث ازمويونکې- وګورئ ازمويل-

ازمېښت:(اَز-مېښت)اسم- وګورئ ازمايښ-

ازمېښتی:(اَز-مېښ-تی)اسم مفعول/صفت- (۱)ازمايلے شوے- (۲)چالاک- چلباز- مکار- (۳)مجرب- (۴)مشروط-

ازمېيل:(اَز-مې-يل)مصدر- ازمويل- تجربه کول-

ازمېيلے:(اَز-مې-يهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- تجربه شوے- جمع

ئ" (ځی-رَل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پيا-لي)، ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ازمپيلی- مؤنث ازمپيلې- وګورئ ازمپيل-

ازوغ:(ا-زوغ)اسم- د ژمی د پاره د خوراک سامان چې سنجه شوے وی- د ازوغ يا ازوغے کوټه- ګودام- د خوراک د سامان کمره- (م- ازوقه- عربی)-

ازوه بوټے:(اُز-وه-بُو-ټے)اسم- واحد- مذکر- غرنيز شين بوټے چې پۀ يونانی دارو کښې پکارولے شی- مُصبَّر- مسبَّر- نباتاتی نوم د ايکوی ليرس يو قسم- (انګريزی ايلو-ايکل-وډ)- جمع ازوه بوټی-

ازی متـه:(اَ-زی-مِ-تـه)اسم صفت- واحد- مؤنث- شرمنده- نادم- وګورئ زيمته- (م- عربی- مزيمت)-

ازبيل:(اَ-زِې-يِل)مصدر- وګورئ اړبيل-

ازبيلے:(اَ-زِې-يۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ازبيلی- مؤنث ازبيلې- وګورئ اړبيل-

ازبين:(اَ-زِې-ين)حاصل مصدر- وګورئ ازبيل-

ازبينګ:(اَ-زِې-ينګ)حاصل مصدر- وګورئ ازبيل-

ازبينه:(اَ-زِې-يۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ازبيل-

ازبيونکے:(اَ-زِې-يُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ازبيونکی- مؤنث ازبيونکې- وګورئ ازبيل-

اژدر:(اَژ-دَر)اسم- واحد- مذکر- مار- اژدها- ښامار- (ش- فارسی)-

اژدره:(اژ-دَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مارنګه- (۲)پېغله جل- د ديدن لائقه جينۍ- (۲)مسته- ښکلې- پېغله-

اژدرها:(اژ-دَر-ها)اسم صفت- وګورئ اژدها-

اژدها:(اژ-دَ-ها)اسم صفت- ښامار- لوئ مار- کټے مار- اژدر- اژدرها-

اژغنژن:(اُژ-غَن-ژَن)اسم صفت- لۀ ورۍ جوړ شوے- لۀ وژغونې جوړ- وژغن ژن-

اژغنور:(اُژ-غُ-نَ-وَر)اسم صفت- واحد- مذکر- مؤنث اژغنوره- جمع اژغنوری- وګورئ اژغنژن-

اژمکی:(اُژ-مَ-کِي)اسم- واحد- مؤنث- سپوږمۍ- وږمکۍ- مياشت- وړه مکه- وګورئ وږمکه-

اړبکه:(اړ-بَ-که)اسم- واحد- مؤنث- تور وزرونه لرونکې يوه مرغۍ- شفته- ماهی خورک- بادخورک-

اړرمے:(اړ-ره-مے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اړومے/ اړرقے-

اړغونګ:(اُړ-غو-نګ)اسم- مذکر- يو بدبودار بوټے چې سپين ګل کوی-

اړکی:(اُړه-کِی)اسم تصغير- واحد- مؤنث- د اوړی اسم تصغير- وړه اوړی-

اړل:(اَ-ړل)اسم صفت- ميله من- لېوال- مشتاق- تلوسه اړونکے-

اړبيل:(اَ-ړِې-يِل)مصدر- (۱)غښتل- تاوول- تاو ورکول- (۲)لمسول- ګومارول- (۳)جګول-

آس:(آس)اسم صفت- واحد- مذکر- لوئ خبر-

اس:(اَس)اسم- واحد- مذکر- (۱)کلک سومونه، ايال او وږده لکی لرونکے مشهور ځناور چې پخوانی زمانه کښې به د جنګ پۀ کار راتللو- اوس د سورلی، ټانګو او ګاډيو د پاره استعماليږی- (۲)د شطرنج يو مهره- مؤنث اسپه- (ش- فارسی اسپ- پهلوی اسب- ژند اسپه- سنسکرت اشو)-

اسا:(اَ-سا)اسم- (۱)غزوونې- خميازه- (۲)شان- ځېر- (وړومبی معنٰی پښتو کښې مستعمله نۀ ده)- (فارسی)-

اساتذه:(اَ-سا-تِ-ذه)اسم- جمع- مذکر- سبق ښيونکی- واحد استاذ- تعليم ورکونکی- (م- عربی استاذ- فارسی استاد)-

اسارت:(اَ-سا-رَت)اسم- (۱)قېد و بند- (۲)مرئی توب- بندی توب- غلامی- (عربی)-

اساس:(اَ-ساس)اسم- واحد- مذکر- اړه- بُنياد- رده- بُنسټ- جمع اساسونه-

اساس ګذار:(اَ-ساس-ګُ-ذار)اسم فاعل- پۀ بنيادی طور- رده کښېښودونکے- بنياد کښېښودونکے-

اساساً:(اَ-سا-سَن)متعلق فعل- د اساس سره متعلق-

اسامه:(اَ-سا-مه)اسم صفت- لوئی- شان و شوکت-

اساسی:(اَ-سا-سِي)صفت- بنيادی- بنيادی قانون- آئين- (افغانستان)-

اساطير:(اَ-سا-طِير)اسم- جمع- مذکر- قيصې- زړې افسانې- (م- عربی اساطير)-

اساليب:(اَ-سا-لِيب)اسم- جمع- مذکر- طريقې- طرزونه- طورطريقې- واحد اسلوب- (م- اسلوب عربی)-

اسامی:(اَ-سا-مِی)(۱)د اسم جمع الجمع- نام- نومونه- (۲)خلق- (۳)دهقان- کاشتکار- (۴)سړے- (۵)اخستونکے- ګاک- خريدار- (۶)عهده- نوکری- (۷- صفت)مالدار- امير- وګورئ سامی- (م- عربی)-

اسان:(ا-سان)اسم صفت- مذکر- د ګران ضد- د ګران، مشکل او سخت ضد- سوکه-

اسانتوب:(ا-سان-توب)اسم- وګورئ اسانتيا-

اسانتيا:(ا-سان-تيا)اسم- اسانی- اسانتوب- اسان والے- سهولت- وګورئ اسانتيا-

اسانوالے:(ا-سان-وا-لے)اسم- وګورئ اسانتيا-

اسانول:(ا-سا-نَ-وَل)مصدر متعدی- د ګرانول ضد- سوکه کول- اسانتيا پېدا کول- قيمت کمول- ارزانول- سوان کول- (ش- فارسی آسان)-

اسانون:(اَ-سا-نَ-وِن)حاصل مصدر- وګورئ اسانول-

اسانونکے:(اَ-سا-نَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسانونکی- مؤنث اسانونکې- وګورئ اسانول-

اسانونګ:(اَ-سا-نَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اسانول-

اسانونه:(اَ-سا-نَ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسانول-

اسانه:(اَ-سا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اسان-

اسانه اسانی:(اَ-سا-نه-اَ-سا-نِي)اسم- وګورئ اسان- اسانتيا- ډېره اسانی-

اسانی:(اَ-سا-نِي)اسم- وګورئ اسانتيا-

اسانېدل:(اَ-سا-نې-دَل)مصدر لازم- سوکه کېدل- اسان کېدل- (ش- فارسی)-

"زېر"(خ-يۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زبر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(زَ-ړه)، "ۀ"(ړو-بې-دۀ)

اسانېدن:(ا-سا-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اسانېدل-
اسانېدنګ:(ا-سا-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اسانېدل-
اسانېدنه:(ا-سا-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسانېدل-
اسانېدونکے:(ا-سا-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسانېدونکی- مؤنث اسانېدونکې- وګورئ اسانېدل-
اسانېدهٔ:(ا-سا-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اسانېدل-
اسایش:(آسا-یش)اسم- واحد- مذکر- آرام- سُکالی- جمع اسایشونه- (م- فارسی)-
اسباب:(اَس-باب)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ سبب جمع- (۲)وجوهات- (۳)دَ ضرورت سامان- (۴)کالی- خاص طور سره دَ کټ بسترې سره متعلق- (۵)عضو تناسل (عامیانه)-
اسباق:(اَس-باق)اسم- جمع- مذکر- دَ سبق جمع- دَ کتاب هغه حصې چې مره ورځ يې لَستونکے پهٔ لستلو وړاندې خی- (م- عربی سبق- مخکښې تلل)-
اسبانهٔ:(اَس-با-نهٔ)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ اسونو ساتونکی- (۲)دَ اسپبه مغیّره حالت- واحد اسبون/اسبه-
اسبند:(اَس-بند)اسم- واحد- مذکر- دَ یو بوټی نوم- اسپند- سپند- سپېلنے- وګورئ توردانه سپېلنے- نباتاتی نوم پېګانم هرملا (PAGAUM -HARMALA)
اسبون:(اَس-بون)اسم- واحد- مذکر- دَ اسونو څرونکے- دَ اَسونو پالونکے- دَ اَسونو ګله بان- جمع اسبانهٔ- مؤنث اسبنه- جمع/مؤنث اسبنې-
اسبونول:(اَس-بو-نَ-ول)مصدر متعدی- دَ چانه دَ اسونو څرونکے جوړول- څوک دَ اسونو پهٔ څرولو مقررول-
اسبونولے:(اَس-بو-نَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اسبونولی- مؤنث اسبونولې- وګورئ اسبونول-
اسبونون:(اَس-بو-نَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ اسبونول-
اسبونونکے:(اَس-بو-نَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسبونونکی- مؤنث اسبونونکې- وګورئ اسبونول-
اسبونونګ:(اَس-بو-نَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اسبونول-
اسبونونه:(اَس-بو-نَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسبونول-
اسبونېدل:(اَس-بو-نې-دل)مصدر لازم- دَ اسونو ګله بان کېدل-
اسبونېدلے:(اَس-بو-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اسبونېدلی- مؤنث اسبونېدلې- وګورئ اسبونېدل-
اسبونېدن:(اَس-بو-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اسبونېدل-
اسبونېدنګ:(اَس-بو-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اسبونېدل-
اسبونېدنه:(اَس-بو-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسبونېدل-
اسبونېدونکے:(اَس-بو-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسبونېدونکی- مؤنث اسبونېدونکې- وګورئ اسبونېدل-

اسبونېدهٔ:(اس-بو-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اسبونېدل-
اسبه:(اَس-به)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ اَس دَ ساتلو او خصمانې نوکر- سائیس- دَ اَسونو ساتونکے- جمع اسبانهٔ-
اسپاب:(اَس-پاب)اسم- جمع- مذکر- وګورئ اسباب-
اسپتال:(اَس-پَ-تال)اسم- واحد- مذکر- هغه ځائ چې پکښې دَ رنځورانو علاج کیږی جمع اسپتالونه- (م- انګریزی هاسپی ټل)-
اسپرین:(اَس-پَ-رین)اسم صفت- (۱)لهٔ اَسپنې جوړ- (۲)کول- سخت- غټېړے- ړکوسی سنګینی-
اسپغول:(اس-پَ-غول)اسم- جمع- وګورئ سپېغول-
اسپک:(اَس-پک)اسم- واحد- مذکر- لویه خېمه- تمبو-
اسپکه:(اَس-پهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ خړ رنګ یو سپین ګل لرونکے بوټے چې حکیمان يې دَ مرضونو دَ پاره تجویز کوی- جمع اسپکې-
اسپکے:(اَس-پَ-کے)اسم- واحد- مذکر- اَس کوړے- دَ اس اسم تصغیر-
آسپل:(اَس-پل)مصدر- جمع کول- سنجه کول- ټنډوروَل- ذخېره کول- راغنډول-
اسپلاغ:(اَس-پَ-لاغ)اسم- دَ پالک ساګ-
اسپله:(اس-پهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ خړ رنګ لرونکے یو بوټے چې سپین ګل لری او دوایانو کښې پکارولے شی-
اسپنتوړے:(اَس-پَن-تو-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه اوزار چې اَسپنه پرې توړلې شی- (۲)سُوان-
اسپنخړے:(اَس-پن-خهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ اَسپنې بوره یا خیرے- سپنخړے- دَ اَسپنې کشته- دَ اَسپنې زنګ- اسپنخیرے- (م- دَ اَسپنه او خیرے مُرکّب)-
اسپنخور:(اَس-پن-خور)اسم- واحد- مذکر- سُوان- دَ لوارانو کالے چې اوزار پرې تېرهٔ کوی- (دَ اَسپنې او خور مُرکّب)-
اسپنخیرے:(اَس-پن-خی-رے)اسم- مذکر- زنګ- دَ اسپنې دَ پاسه چې سوربخن شان خیرے وخیژی- اسپنخړے-
اسپند:(اَس-پند)اسم- واحد/جمع- مذکر- توره دانه- اسپند- سپند- سپېلنے- دَ یو بوټی دانې چې دَ نظر ماتولو دَ پاره پهٔ اُور اچولے شی- نباتاتی نوم پیګانم هرملا (PEGUNUM HARMALA)-
اس پنډوس:(اَس-پَن-ډوس)اسم- واحد- مذکر- دَ پولو لوبه- (فارسی- چوګان)-
اسپنډوکے:(اَس-پن-ډو-کے)اسم- واحد- مذکر- قنجوغه- کنجوغه- خورجی- خورجین- دَ اَس دَ سوارهٔ کڅوړه-
اسپن ذات:(اَس-پَن-ذات)اسم صفت- مضبوط- کلک- کوټلے- سخت-
اسپنکښ:(اَس-پَن-کښ)اسم- واحد- مذکر- اهن رُبا- یو قسم تور کانړے چې دَ خېل کشش نه نور څیزونه خان ته راکاږی (افغانستان)-
اسپنمزے:(اَس-پَن-مهٔ-زے)اسم- واحد- مذکر- جمع اَسپن مزی- لهٔ اَسپنې

ئ" (ښی-رل)٠ ي"(مې-ره-ول)٠ ئ"(پیا-لی)٠ یے"(تن-دیر) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

جوړ شوے تار- (افغانستان)-

اسپنه:(أس-پهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ دهاتونو کښې لهٔ ټولو زیات استعمالېدونکے سخت دهات چې کیمیائی فارمولا ئې ایف - ای (FE) او اټمی شمېر ئې ۲۶ دے-

اسپنیز:(أس-پهٔ-نیز)اسم صفت- دَ أسپنې سره متعلق- دَ أسپنې نه جوړ-

اسپوېلے:(أس-پو-یهٔ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ ښهٔ عادتونو ښهٔ لباس ښُتن- دروند خوږ سړے- (۲)سپین روبے-

اسپه:(أس-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو مرض چې دَ پوزې نه پکښې وینه ځی- (۲)یو مرض چې دانه پکښې پهٔ بدن راخیژی- (۲)حیض- (ش- حصب عربی)-

اسپه:(أس-په)اسم- واحد- مؤنث- دَ غرمنې هغه بیماری چې سوزے کوی-

اسپه:(أس-په)اسم- واحد- مؤنث- دَ أس مؤنث- وګورئ اس-

اسپیل:(أس-پې-یِل)مصدر- وګورئ اسپل-

است:(أست)اسم- واحد- مذکر- کناټے- کنه- ارغې- (ش- انګریزی اس)-

است:(أست)اسم- واحد- مذکر- شتهٔ- هستی- وجود- خلق- (کول/کېدل مصدرونه)- (م- فارسی هست)-

استاخکرنه:(أس-تاخ-ګ-رهٔ-نه)اسم- خبر وړنه را وړنه- پیغام رسانی-

استاخوالے:(أس-تاخ-وا-لے)اسم- وګورئ استاخکرنه-

استاخے:(أس-تا-خے)اسم صفت- واحد- مذکر- پیغام وړونکے را وړونکے- پیغام رسان- قاصد- نماینده- جمع استاخی-

استاد:(أس-تاد)اسم صفت- واحد- مذکر- ښیُونکے- هغه سړے چې بل چاته څهٔ علم یا کسب ښئیی- ماهر- جمع استادان- مؤنث استاده- جمع/مؤنث استادانې- (م- فارسی)-

استادانه:(أس-تا-دا-نه)متعلق فعل- دَ استاد سره متعلق- (م- فارسی استاد)-

استاده:(أس-تا-ده)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ استاد مؤنث- جمع/مؤنث استادانې-

استادی:(أس-تا-دي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ استاد- دَ استاد پېشه-

استاذ:(أس-تاذ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ سبق، کار کسب ښیونکے- (۲)چلاک- جمع استاذان-

استاذ توب:(أس-تاذ-توب)اسم- وګورئ أستاذ- استاذی- دَ استاذ پېشه- استادی- استاذتیا- استاذوالے-

استاذتیا:(أس-تاذ-تیا)اسم- وګورئ أستاذتوب-

استاذوالے:(أس-تاذ-وا-لے)اسم- وګورئ أستاذتوب-

استاذه:(أس-تا-ذه)اسم صفت- واحد- مؤنث- سبق ښیونکې ښځه- دَ استاذ مؤنث-

استاذی:(أس-تا-ذي)اسم- وګورئ أستاذتوب-

استان:(أس-تان)اسم- واحد- مذکر- (۱)کور- مکان- درشل- دروازه- ستانه- جمع استانونه- (۲)خاندان-

استانه:(أس-تا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ استان سره متعلق- دَ وُسېدو ځائې- (۲)کور- جونګړه- (۲)دَ پیر دَ کښېناستو ځائې- (۴)پیر- فقیر-

استانه دار:(أس-تا-نه-دار)اسم صفت- استانه لرونکے- دَ استانې خاوند- دَ ملیانو، میاګانو، پیرانو دَ کورنی غړے-

استاونه:(أس-تا-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وُسېدنه- ډېره کېدنه- استوګنه کونه- څهٔ څیز لهٔ یو ځائې نه بل ځائې ته لېږنه-

استبداد:(اس-تب-داد)اسم- ظلم- جبر- غاصبانه عمل- مطلق العنانی- (م- عربی)-

استبدادی:(اس-تب-دا-دی)صفت- دَ استبداد سره متعلق-

استثمار:(اس-تث-مار)اسم- (۱)اېونه- میوه ټولونه- انتخاب- (۲)دَ بل لهٔ محنته فائده اخستنه- استعمار- (م- عربی)-

استثمارچی:(اس-تث-مار-چی)اسم فاعل/صفت- (۱)اېونکے- مېوه ټولونکے- انتخابونکے- (۲)استعماری- دَ بل لهٔ محنته فایده اغستونکے-

استثمارګر:(اس-تث-مار-ګر)اسم فاعل/صفت- وګورئ استثمارچی-

استثمارول:(اس-تث-ما-ره-ول)مصدر متعدی- (۱)اېول- مېوه ټولول- انتخابول- (۲)دَ بل لهٔ محنته فائده اخستل-

استثمارېدل:(اس-تث-ما-رې-دل)مصدر لازم- (۱)انتخابول- اېېدل- (۲)دَ بل لهٔ محنته فائده اخستل کېدل-

استثنی:(اس-تث-نا)مصدر- دَ یو عامې قاعدې یا دَ قانون دَ نفاذ نه څوک بری کول- بیلول/خارجول- (عربی)-

استحصال:(اس-تح-صال)اسم- طلب دَ حصول- اخستنه- حاصلونه- دَ اخستلو خواهش- پهٔ زور اخستنه- تروړنه- (م- عربی)-

استحضار:(اس-تح-ضار)اسم- حاضری غښتنه- بلنه-

استحقاق:(اس-تح-قاق)اسم- طلب دَ حق- حق غښتنه- (م- عربی)-

استحقاقی:(اس-تح-قا-قی)اسم صفت- دَ استحقاق سره متعلق-

استحکام:(اس-تح-کام)اسم- مضبوطیا- پوخ والے- ټینګار- جمع استحکامات- (م- عربی)-

استخاره:(اس-ت-خا-ره)اسم- (۱)طلب دَ خیر کونه- (۲)فال اچونه- (۲)پهٔ شرعی اصطلاح کښې دَ یو کار دَ کېدو او نهٔ کېدو پهٔ باب کښې پهٔ یوه خاصه طریقه غیبی اشاره غښتنه- (م- عربی)-

استخراج:(اس-تخ-راج)اسم- (۱)راوتنه- (۲)را ایستنه- (۲)خارجونه-(۴)بیلېدنه- (۵)تفریق کونه- (م- عربی)-

استخلاص:(اس-تخ-لاص)اسم- (۱)دَ خلاصولو کوشش کونه- (۲)خلاصېدنه- (۲)نجات موندنه- (عربی)-

استخوان:(أس-تهٔ-خان)اسم- واحد- مذکر- هډوکے- هډ- (م- فارسی)-

استخوان فروشی:(أس-تهٔ-خان-فه-رو-شي)اسم- دَ مړ پلار، نیکهٔ پهٔ عزت برکت شهرت غښتنه- (فارسی)-

استدراک:(اس-تد-راک)اسم- موندنه- پوهېدنه- (م- عربی)-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زیر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-هې-دهٔ)

استدعا:(اس-تد-عا)اسم- پښتنه کونه- (م-عربي)-
استدلال:(اس-تد-لال)اسم- دلیل- ثبوت- دلیل راوړنه- دلیل غښتنه-
استر:(اس-تر)اسم- واحد- مذکر- (۱)د کپړې د مخ ضد- د غبرګې کپړې لاندې طرف- (۲)خرمن- خور- جمع استرونه-
استراحت:(اس-ت-را-حت)اسم- سکون- آرام- (م- عربي)-
اُسټربل:(اُس-ټر-بل)اسم- واحد- مذکر- دبر- شا- کُنه- سومبی- غزه-
استري:(اس-تري)اسم- واحد- مؤنث- د اُسپنې یوه آله چې ګرمه کړے شي نو په جامو يې ګرخوی او د کپړو ګونجې پرې اواروی- اتو- (م- هندی)-
استرے:(اُس-ترے)اسم صفت- وروستے- آخری- جمع اُستری- مؤنث استری-
استسقاء:(اس-تس-قا)اسم- (۱)ابه غښتنه- (۲)باران غښتنه- (۳)د یو مرض نوم چې د هغې مریض په ابو څښلو نه مړیږی- (۴)توسخوري- (۵)د باران د غښتلو مونځ-
استصواب:(اس-تص-واب)اسم- رائ پښتنه- مشوره غُښتنه-
استطاعت:(اس-ت-طا-عت)اسم- (۱)وس- (۲)شته منی- بډانی- دولت- حېثیت-
استعاره:(اس-ت-عا-ره)اسم- په سوال غښتنه- په سوال اخېستنه- یو لفظ د خپل اصلی مفهوم په ځائ په بله معنٰی کښې داسې استعمالوند چې د اصلی او مرادی معنو تر مینځه د تشبیه وغېره تعلق وی-
استعانت:(اس-ت-عا-نت)اسم- مدد او کمک غُښتنه- مرسته غُښتنه-
استعجاب:(اس-تع-جاب)اسم- حېرانېدنه- (م- عربي)-
استعداد:(اس-تع-داد)اسم- (۱)قابلیت- صلاحیت- (۲)قدرت- توان- وس- مالی توان (افغانستان)- (م- عربی)-
استعفٰی:(اس-تع-فا)اسم- طلب د معافئ کونه- په یو منصب د کار نه کولو اراده ظاهرونه- (م- عربی)-
استعمار:(اس-تع-مار)اسم- (۱)ودانی غښتنه- (۲)پردے ملک په خپل لاس کښې راوستنه- (۳)د بل ملک په وسائلو قبضه کونه- (م- عربی)-
استعمار پرست:(اس-تع-مار-پ-رست)اسم صفت- استعمار غښتونکے- د استعمار شوقی- استعمارجو- استعماری- استعمارچی- استعمارګر-
استعمار جو:(اس-تع-مار-جو)اسم صفت- وګورئ استعمارپرست-
استعمار چی:(اس-تع-مار-چی)اسم صفت- وګورئ استعمارپرست-
استعمار ګر:(اس-تع-مار-ګر)اسم صفت- وګورئ استعمارپرست-
استعماری:(اس-تع-ما-ری)اسم صفت- وګورئ استعمارپرست-
استعمال:(اس-تع-مال)اسم- (۱)په کار راوستنه- چلونه- (۲)احتیاط- نرمی- (م- عربی)-
استعمالی:(اس-تع-ما-لی)اسم صفت- د استعمال وړومبی معنې سره متعلق-
استعمالول:(اس-تع-ما-ل-ول)مصدر- په کار کښې راوستل- چلول-
استعمالون:(اس-تع-ما-ل-ون)حاصل مصدر- وګورئ استعمالول-
استعمالونکے:(اس-تع-ما-ل-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع استعمالونکی- مؤنث استعمالونکې- وګورئ استعمالول-
استعمالونګ:(اس-تع-ما-ل-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ استعمالول-
استعمالونه:(اس-تع-ما-ل-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ استعمالول-
استعمالېدل:(اس-تع-ما-لې-دل)مصدر لازم- چلېدل- په کار کښې راتلل-
استعمالېدن:(اس-تع-ما-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ استعمالېدل-
استعمالېدنګ:(اس-تع-ما-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ استعمالېدل-
استعمالېدونکے:(اس-تع-ما-لې-دون-کے) اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع استعمالېدونکی- مؤنث استعمالېدونکې- وګورئ استعمالېدل-
استعمالېدنه:(اس-تع-ما-لې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ استعمالېدل-
استعمالېده:(اس-تع-ما-لې-ده)حاصل مصدر- وګورئ استعمالېدل-
استغاثه:(اس-ت-غا-ثه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مدد غښتنه- غاؤ غاؤ کونه- فریاد کونه- (۲)دعوٰی کونه- د چا برخلاف په فوځداری عدالت کښې دعوٰی کونه- (م- عربی)-
استغفار:(اس-تغ-فار)اسم- بخښنه غښتنه- توبه کونه- (م- عربی)-
استغفرالله:(اَس-تغ-ف-رل-لا)کلمه- (۱)زه د الله نه بخښنه غواړم- (۲)د توبې، انکار او نفرت په موقع وئیلے شی- (م- عربی)-
استغراق:(اس-تغ-راق)اسم- په څه خیال کښې ډوبېدنه- توجه یو ځیز ته کونه- محویت-
استغنا:(اس-تغ-نا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بې پروائی- بې نیازی- بې فکری- (۲)دولت مندی-
استفاده:(اس-ت-فا-ده)اسم- (۱)فائده حاصلونه- ګټه غښتنه- (۲)فائده- نفع- یو شے په خپل کار او فائده کښې راوستنه-
استفتا:(اس-تف-تا)اسم- فتوٰی غښتنه- مسئله غښتنه- (م- عربی)-
استفسار:(اس-تف-سار)اسم- پښتنه- تپوس کونه- معلومونه-
استفهام:(اس-تف-هام)اسم- (۱)ځان پوهونه- (۲)سوال پښتنه- (۳)سوالیه علامت-
استقامت:(اس-ت-قا-مت)اسم- (۱)ودرېدنه- ودرونه- (۲)ټینګوالے- (۳)قیام-په هوش- طاقت-
استقبال:(اس-تق-بال)اسم- (۱)د چا مخې ته وتنه- (۲)راتلونکې زمانه- (۳)هرکلے- (م- عربی)-
استقرا:(اس-تق-را)اسم- څېړنه- لټون- تلاش-
استقرار:(اس-تق-رار)اسم- ټیکاؤ- ثبات- ودرېدنه-
استقراریه:(اس-تق-را-ری-یه)اسم- هغه دعوٰی چې عدالت نه پکښې د مدعا په حقله د فتوې درخواست شوے وی (قانون)-
استقلال:(اس-تق-لال)اسم- خپلواکی- د ملک د بل حکومت نه ازادېدنه-
استکار:(اُس-ت-کار)اسم صفت- کاریګر- ماهر- دست کار- کسب ګر- جمع استکاران- مؤنث اُستکاره- جمع مؤنث استکارې-
استکاری:(اُس-ت-کا-ری)اسم- مؤنث- کاریګری- مهارت-

ي (څې-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (ترن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

استل:(اس-تَل)مصدر/فعل متعدی- ایستل- ویستل- وُباسل-

استل:(اس-تَل)مصدر/متعدی- یستل- خارجول-

استل:(اُس-تَل)مصدر- مېشته کېدل- وَسېدل-

استمداد:(اس-تم-داد)اسم- مدد غوښتنه- کومک غوښتنه- مرسته غوښتنه-

استمرار:(اس-تم-رار)اسم- همېشه توب-

استناوه:(اُس-ت-نا-وه)اسم- واحد- مؤنث- دَ مشرئ یا بزرګئ مالی حق-

استنباط:(اِس-تم-باط)اسم- اخذ کونه- را ایستل- حاصلونه- خوښونه- (م- عربی)-

استنجا:(اس-تن-جا)اسم- دَ ضروری حاجاتو نه پس اودس کونه- دَ نمانځهٔ دَ پاره پهٔ شرعی طریقه تیارے-

استوا:(اس-ت-وا)اسم- برابرونه- سموالے- سمون- (م- عربی)-

استوار:(اُس-تَ-وار)اسمِ صفت- (۱)ټینګ- (۲)کلک- (۳)مضبوط- (۴)محکم- (م- فارسی)-

استواری:(اُس-ت-وا-ری)صفت- استوار سره متعلق-

استوازے:(اس-تُ-وا-زے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ اُستازے- (عامیانه)-

استوغان:(اس-تو-غان)اسم- (۱)صبر- طاقت- (۲)مرئ- حلق-

استوګن:(اس-تو-ګن)اسم- واحد- مذکر- نولسمې صدی کښې پهٔ زرومبی خل استعمال شوے تورے- وګورئ استوکے-

استوګنه:(اُس-توګ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ استوګن او استوکے- دَ استوکے غلط قرأت-

استوګه:(اُس-تو-ګه)اسم- دیره نیونه وسېدنه- بودوباش اختیارونه- ډېره کېدنه-

استوکے:(اس-تو-کے)اسمِ فاعل- استوګه کونکے- وسېدونکے- جمع استوکی-

استول:(اس-تَ-ول)مصدر متعدی- (۱)هستول- ابادول- مېشته کول- زرغونول- (۲)مرسته او پُشت پناهی کول- ابادول-

استولے:(اُس-تَ-زهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع استولی- مؤنث استولې- وګورئ استول-

استون:(اُس-تَ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ استول-

استونکے:(اُس-تَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع استونکی- مؤنث استونکې- وګورئ استول-

استونه:(اُس-تَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ استول-

استونے:(اُس-تَ-زهٔ-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع استونی- مؤنث استونې- وګورئ استول-

استوے:(اُس-تَ-زے)صفت- (۱)یو ستوے- چې غبرګ نهٔ وی- (۲)یواځې- بې څوکه- چې وررور عزیز نهٔ لری- خان لهٔ- (۳)یو- چې پهٔ شان ئې بل نهٔ وی- (۴)دَ یوهٔ تاژ-

استهزا:(اس-ته-زا)اسم- پیشاړې- ټوقې- ملنډې- (کول/کېدل مصدرونه)-

(م- عربی)-

استین:(اُس-تین)اسم- واحد- مذکر- لستونړے- نستونړے- جمع آستینونه-

استینه:(اَس-تی-نه)اسم- واحد- مؤنث-اکی- مکی- ما- جمع آستینې- (م- فارسی)-

استېدل:(اس-تې-دَل)مصدر- مېشته کېدل- أبادېدل- ودرېدل- زرغونېدل- وَسېدل-

استېدلے:(اُس-تې-دهٔ-لے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع استېدلی- مؤنث استېدلې- وګورئ استېدل-

استېدن:(اُس-تې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ استېدل-

استېدنګ:(اُس-تې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ استېدل-

استېدنه:(اُس-تې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ استېدل-

استېدونکے:(اُس-تې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع استېدونکی- مؤنث استېدونکې- وګورئ استېدل-

استېده:(اُس-تې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ استېدل-

استېزه:(اُس-تې-زه)اسم- دَ جنګېدونکو فریقو تر مېنځه دَ صُلحې خبرې-

اسد:(اَ-سَد)اسم- واحد- مذکر- (۱)مزرے- زمرے- (۲)دَ آسمان پهٔ دولسو برجونو کښې یو برج چې شکل ئې دَ مزری پهٔ شان وی- (۳)دَ شمسی کال میاشت چې دَ عیسوی کال دَ ۲۴ جولائی نه ۲۲ اګست سره مطابقت خوری- (م- عربی)-

اسرار:(اُس-رار)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)راز ساتنه- (۲)راز پټونه- (۳)دَ زرومبی الف پهٔ فتح) رازُونه-

اس راس:(اُس-راس)اسمِ صفت- لربر- اخوا دېخوا- علته دلته- دلته- اورته- الے دورے- دولے دولے- دلے دورے-

اسراف:(اس-راف)اسم- بدخرڅی- عبث لګښت- زیاتے- (م- عربی)-

اسرافیل:(اُس-را-فیل)اسم- هغه فرښته چې دَ قیامت پهٔ ورځ بهٔ شپیلی غږوی-

اسرائیل:(اُس-را-ایل)اسم- دَ حضرت یعقوب علیه السلام لقب- (م- عبرانی- اسر- پالوان/بنده او ایل- خدائ)-

اسره:(اُس-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طمع- توقع- (۲)بر- (۳)مېرنه- درېغ- جمع اسرې- (م- هندی آسرا)-

اسره باز:(اُس-ره-باز)اسمِ صفت- مذکر- اسره من- (۱)توقع کونکے- اسره کونکے- طمع کونکے- (۲)برلرونکے- (۳)صرفه کونکے-

اسره من:(اُس-ره-مَن)اسمِ صفت- مذکر- وګورئ اسره باز-

اسرد:(آ-سرد)اسم- واحد- مذکر- کړاؤ- تکلیف-

اسفنج:(اُس-فنج)اسم- واحد- مذکر- اسپنج- یو سمندری مخلوق- (م- انګریزی- سپنج)

اِسقاط:(اُس-قاط)اسم- واحد- مذکر- (۱)سخاوت- هغه صدقه چې دَ مړی دَ جنازې نه پس ورکېدے شی- (۲)اچونه- دَ حمل زیان- (م- عربی)-

اسک:(ا-سک)اسم- واحد- مذکر- پچه- ټرغه- یسک- خسنے- ایسک- خسک-

(اچول مصدر)-

اسک:(اَسکَ)اسم صفت- مسک- وُچت- پورته-

اسکېرل:(اَس-کې-رَل)مصدر- پۀ شکارۀ کښې غله دَ بره نه را پریستل او صفا کول- ځپ وهل-

اسکېرل:(اَس-کې-رَل)مصدر مُتعدی- ژپل- بې دمه کول- کمزورے کول- ځپل- خوارول-

اسکېرلے:(اَس-کې-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اسکېرلي- مؤنث اسکېرلې- وګورئ اسکېرلے-

اسکېرن:(اَس-کې-رَن)حاصل مصدر- وګورئ اسکېرل-

اسکېرنګ:(اَس-کې-رَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اسکېرل-

اسکېرنه:(اَس-کې-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسکېرل-

اسکېرونکے:(اَس-کې-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسکېرونکي- مؤنث اسکېرونکې- وګورئ اسکېرل-

اسکېزنه:(اَس-کې-زۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ دروازې دَ اړم وړد لرګے-

اسکېلوړے:(اَس-کېل-وړے)اسم- واحد- مذکر- اسویلے-

اسکند:(اَس-کَند)اسم- واحد- مذکر- یوه جرړه چې لږه ترخه او یوه کته اوړده نرۍ او سپین بخنه وی او پۀ دارُو کښې پکارولے شی- نباتاتی نوم ئے سیلس فلیکسوزا-

اسکوړے:(اَس-کُو-ړے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- (۱)دَ اَس وړوکے بچے- بیاڼ- (۲)دَ ماشومانو دَ لوبو لۀ لرګی یا بل کوم څیز جوړ شوے وړوکے اَس- اسکوړے-

اسکېرل:(اَس-کې-رَل)مصدر متعدی- غوږ نیوے کول- غوږ څارنې کول- دَ چا خبرو ته پټ غوږ نیول-

اسکېرلے:(اَس-کې-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اسکېرلي- مؤنث اسکېرلې- وګورئ اسکېرل-

اسکېرن:(اَس-کې-رَن)حاصل مصدر- وګورئ اسکېرل-

اسکېرنګ:(اَس-کې-رَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اسکېرل-

اسکېرنه:(اَس-کې-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسکېرل-

اسکېرونکے:(اَس-کې-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسکېرونکي- مؤنث اسکېرونکې- وګورئ اسکېرل-

اسل:(اَسل)اسم صفت- (۱)برابر- سم- (۲)دَ بدل ضد-

اسلاف:(اَس-لاف)صفت- لرغونی- پخوانی- وړومبنی- دَ پېړی مشران-

اسلام:(اِس-لَام)اسم- مذکر- (۱)مغه دین چې رسول الله صلی الله علیه و سلم او نورو نبیانو دَ خدایَ لۀ طرفه راوړے دے- دَ خدایَ پاک غوره کړے دین- محمّدی دین- (۲)غاړه ایښودنه- (م- عربی)-

اسلامی:(اِس-لا-می)اسم صفت- دَ دین اسلام سره متعلق-

اسلحه:(اَس-لَ-حه)اسم- واحد- مؤنث- وسله- دَ جنګ سامان- ټوپک- تماچه وغیره-

اسلحه بند:(اَس-لَ-حه-بَند)اسم صفت- مسلح- پۀ وسله پوړ-

اسلوب:(اَس-لُوب)اسم- جمع- مذکر- انځور- طرز- طریقه- جمع اسالیب- (م- عربی)-

اسلول:(اَس-لَ-وَل)مصدر متعدی- برابرول- جزا ورکول- سمول-

اسلولے:(اَس-لَ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اسلولي- مؤنث اسلولې- وګورئ اسلول-

اسلون:(اَس-لَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اسلول-

اسلونګ:(اَس-لَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اسلول-

اسلونه:(اَس-لَ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسلول-

اسلونکے:(اَس-لَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسلونکي- مؤنث اسلونکې- وګورئ اسلول-

اسلی:(اَس-لی)اسم- واحد- مذکر- دَ یو دارُو نوم-

اسلېټ:(اَس-لېټ)اسم- ضد-

اسلېدل:(اَس-لې-دَل)مصدر لازم- سمېدل- برابرېدل- صحیح لارې ته سمېدل-

اسلېدلے:(اَس-لې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اسلېدلي- مؤنث اسلېدلې- وګورئ اسلېدل-

اسلېدن:(اَس-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اسلېدل-

اسلېدنګ:(اَس-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اسلېدل-

اسلېدنه:(اَس-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اسلېدل-

اسلېدونکے:(اَس-لې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اسلېدونکي- مؤنث اسلېدونکې- وګورئ اسلېدل-

اسم:(اِسم/اِ-سَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)نوم- (۲)دَ کس- ځایَ یا څیز نوم (ګرامر)- (۳)سحر- جادو- جمع اسمُونه/اسماء- (م- عربی)-

اسم اعظم:(اِس-مې-اَع-ظَم)اسم- دَ الله تعالی پۀ نومونو کښې دَ ټولو نه لوئ نوم-

اسمٰعیل:(اِس-ما-عیل)اسم- (اصل معنٰی خدایَ پاک واورېدۀ)- دَ حضرت ابراهیم علیه السلام مشر ځوئ چې دَ خدایَ پاک پۀ حکم قربانی دَ پاره پېش کړے وه- دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم جد امجد- (م- عبرانی)-

اسمان:(اَس-مان)اسم- واحد- مذکر- دَ زمکې دَ پاسه ښکارېدونکې دَ شین رنګ چتری- (۲)بخت، شاعرانه اصطلاح- جمع آسمانونه-

اسمان ایوا:(اَس-مان-ای-وا)اسم- وګورئ اسمان کټ-

اسمان چوک:(اَس-مان-چوک)اسم- آسمان ته نېغ تللے- عمودی-

اسمان څاڅکے:(اَس-مان-څاڅ-کے)اسم- ګوجے- ګوجه- اسمان کرینکن- لعاب دار چینجے- مارغچے- اسمان څار-

اسمان څار:(اَس-مان-څار)اسم- مذکر- وګورئ اسمان څاڅکے-

اسمان څک:(اَس-مان-څک)اسم- وُچت- وچته تلا-

اسمان څکاکے:(اَس-مان-څ-کا-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ آسمان څکالے-

اسمان ځکالکے:(اَس-مانَ-ځ-کالَ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ آسمان ځکالے-

اسمان ځکالے:(اَس-مانَ-ځ-کا-لے)اسم- واحد- مذکر- ښاپیرک- اسمان کوچے- ځکاکے- آسمان ځلکے- آسمان ځکالکے- نمابنام ځکالکے- خوچې-

اسمان دره:(اَس-مانَ-دَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- سپینه لار- اسمان لاره-

اسمان کټ:(اَس-مانَ-کټ)اسم- مذکر- دَ اوو ستوریو جومکټ- وګورئ کټ-

اسمان کوچے:(اَس-مان-کو-چے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اسمان ځکالے-

اسمان ګرینګن:(اَس-مانَ-ګرینګ-ګن)اسم- وګورئ اسمان ځاکګے-

اسمان لار:(اَس-مانَ-لار)اسم- واحد- مؤنث- سپینه لار- د ستورو لار-

اسمأ:(اَس-ماْ)اسم- جمع- مذکر- دَ اسم جمع- وګورئ اسم-

اسمانی:(اَس-ما-نی)اسم صفت- دَ آسمان سره متعلق-

اسمانی رنګ:(اَس-ما-نی-رَنګ)اسم صفت- دَ آسمان پهٔ شان رنګ- شین رنګ- پیکه شان شین رنګ-

اسمانی کتاب:(اَس-ما-نی-کِ-تاب)اسم- مذکر- هغه کتابونه چې دَ خدایٔ لهٔ طرفه پهٔ پیغمبرانو نازل شوی وو-

اسنا:(اَس-نا)اسم- واحد- مؤنث- فائده- ښېګړه- نفع- بهتری-

اسناد:(اَس-نادَ)اسم- جمع- مذکر- تصدیقونه- دلیلونه- دَ سند جمع- وګورئ سند-

اسنل:(اَس-نل)اسم- اغېړ- بد هضمی-

اسنے:(اُ-سَ-نے)اسم صفت- مذکر- دَدې وخت- دَدې دوران- مروّج- اوسنے-

اسنېل:(اَس-نِل)مصدر متعدی- دَ برستنو، تولایانو کنډل/پېرل-

اسو:(اَ-سُو)اسم- واحد- مذکر- بکرمی کال شپږمه میاشت- اسوج- ستمبر/اکتوبر-

اسود:(اَس-وَد)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پهٔ رنګ تور- توررنګے- (۲)حبشی- زنګی- (م- عربی)-

اسودګی:(اَ-سُو-دَ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- خوشحالی- بې فکری- بې غمی- (فارسی)-

اسوده:(اَ-سُو-ده)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- (۱)خورنده- موړپټ- موسا- (۲)ارام- بې غمه-

اسوده حال:(اَ-سو-ده-حال)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ اَسوده-

اُسون:(اُ-سونَ)اسم- جمع- مذکر- جمیا- جمامه- جنواوه- تارامبرا- ترخهٔ شرشم(وزیر)- نباتاتی نوم لے پیدیم سیتبی وم-

اسووه:(ا-سو-وه)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- بې خُویه- ناسووه-

اسونی:(ا-سُو-نی)اسم- مؤنث- (۱)تسلی- اطمینان- (۲)ګریزائے- اریمے-

اسونے:(ا-سو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ اُسپنې څټکے- مېخکوب-

اسوېلانه:(اَس-وِې-لانهَ)اسم صفت- واحد- مذکر- سولند- سولاند- ارزاوږے- ارې وژے- وږ سترګے- جمع اسویلاندی-

اسوېلانه توب:(اَس-وِې-لا-نه-توب)اسم- حرص- لالچ- ارزاوږتوب- وږسترګوالے- لوږ توب-

اسوېلڼ:(اَس-وِېل-ڼَ)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې دَ بل ښهٔ حالت ته یٔ کینه راځی او سارهٔ سارهٔ اسویلی کوی- وږے سترګے- ارزا خوارے- بد نیته- مؤنث اسوېلڼه- جمع/مؤنث اسوېلڼې-

اسوېلګے:(اَس-وِېل-ګے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اسوېلے- جمع اسوېلګی-

اسوېلل:(اَس-وِې-لل)مصدر متعدی- فریاد کول- آه و افسوس کول- اوسېلل-

اسوېلے:(اَس-وِې-لے)اسم- واحد- مذکر- آه- دَ زړهٔ دَ رنځ و حسرت دَ اظهار آواز- برنی ژامنه بره او لاندنی ژامنه ښکته کونه او داسې خلهٔ پرانستنه او تری هوا را ایستنه-

اسهال:(اَس-هال)اسم- جمع- نس ناسته- نس نهی- دستونه- دستونه لګېدنه- (م- عربی)-

اسی:(اَ-سی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)سپېرهٔ- بد برخے- منحوس- بد نصیب- (۲)بخیل- کنجوس-

اسی:(اَ-سی)اسم صفت- واحد- مذکر- خصی-

اسیا:(اَ-سیا)اسم- واحد- مؤنث- ژرنده- جمع اسیاوې/اسیاګانې- (م- فارسی)-

اسی توب:(اَ-سی-توبَ)اسم- (۱)سپېرهٔ توب- بدبرخی- بدنصیبی- (۲)خصی توب-

اسیر:(اَ-سیر)اسم صفت- واحد- مذکر- قېدی- بندی- پابند- (م- عربی)-

اسیری:(اَ-سی-ری)اسم- مؤنث- ګرفتاری- قېد و بند-

اسېب:(اَ-سېبَ)اسم- واحد- مذکر- دَ وریتولو دَ پاره لهٔ سړی، اینې او وازدې نه پکه کولمه-

آسېب:(اَ-سېبَ)اسم- واحد- مذکر- دَ پېریانو دېوانو اثر- دَ بدو روحونو اثر- پاسُورے-

اسېت:(اَ-سېتَ)اسم- واحد- مذکر- شامت- نحوست- سپېرهٔ توب-

اسې داسې:(اَ-سې-دا-سې)صفت- (۱)هغسې دغسې- (۲)هېڅ بې هېڅه- بېکاره- بې مطلبه-

اسېمه:(اَ-سې-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه اسپه چې وارې راوړے وی- جمع اسېمې-

اسی:(اَ-سی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دُوند- (۲)یخ بسته- پرخه-

اسے:(اَ-سے)اسم- واحد- مذکر- چګ شوے- کرنګ شوې پرخه- برنجک- چنی- سپینه پرخه- ځله-

اش:(آش)اسم- واحد- مذکر- ښوروا- یخنی- کیر- لېټی- دَ وربشو یا دالو ابهٔ- نګولے-

اش:(اَش)حرف- (۱)دَ تعجب او تحسین کلمه- (۲- اسم)- طمع- آرزو- ګومان- (م- دوېمه معنٰی کښې دَ هندی آشا- اُمید)-

اش:(اَش)اسم صوت- دَ خرهٔ دَ وَدرولو مخصوص اواز-

اش:(اَش)کلمه- دَ انکار کلمه- بیخی داسې نهٔ ده-

اش اش:(اَش-اَش)کلمه- دَ خرهٔ ودرونه-
اشا:(اَ-شا)اسم- واحد- مؤنث- دَ ویرې یو فرضي څیز- اُسیب- جمع اَشاکانې- (م- عربی- اشیا- دَ شی جمع)-
اشا:(اَ-شا)اسم صوت- دَ خرهٔ دَ شړلو اواز-
اشار:(اَ-شار)اسم صفت- واحد- مذکر- تریخ- اشاړ-
اشارت:(ا-شا-رَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)زونګه- ښاره- (۲)دَ سر، سترګو، لاس یا ګُتې یا دَ بل کوم اندام پهٔ ذریعه دَ خپل مقصد څرګندونه- (۳)کنایه- (۴)دَ ایش تپا (میرکاټی) دَ لوبې یوه مرحله- جمع اشارتونه-
اشارتوب:(اَ-شار-توب)اسم- تریخوالے- شاړتوب- شاړوالے-
اشاروالے:(اَ-شار-وا-لے)اسم- وګورئ اشارتوب-
اشاره:(ا-شا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ اشارت وړومبی، دوېمه او درېمه معنی- (۲)المسون- (۳)پهٔ نمانځهٔ کښې دَ تشهد ونېلو پهٔ وخت ګُته وُچتونه-
اشاریت:(ا-شا-ری-یت)اصطلاح- دَ فن او ادب یوه اصطلاح- ایما- رمز- سمبلزم-
اشاریه:(ا-شا-ری-یه)اسم- واحد- مؤنث- انډکس- دَ کتابونو هغه ضمیمه چې پکښې دَ کتابونو لیکونکیو، ځایونو وغېره فهرست ور کړے شوے وی- جمع اشاریې- (م- عربی)-
اشاړ:(اَ-شاړ)اسم صفت- وګورئ اشار-
اشاړی:(اَ-شا-ړی)اسم- واحد- مؤنث- جمع هم استعمالیږی- (۱)زردالو- (۲)وُچه خرمانی- دَ پرونس پومیسټکا یو قسم- ځنې ځایونو کښې "بادام" هم- اشاړی بلی-
اشاعت:(ا-شا-عَت)اسم- (۱)شائع کونه- (۲)اولس کښې ځهٔ خبره خورونه- (۳)کتاب یا رساله چاپ کونه- (۴)ایډیشن- جمع اشاعتونه- (م- عربی)-
اشاکله توبه:(اَ-شا-کَ-له-تو-به)اسم- (۱)دَ حاشا و کلا- توبه مُخفّف او مغفّن- خدایٔ دې نهٔ کوی- بانده- توبه-
اشباه:(اش-باه)اسم- جمع- مذکر- شبه- شک- (م- عربی)-
اشپز:(اَش-پَز)اسم- واحد- مذکر- اش پخونکے- باورچی- بټیارے- (م- فارسی)-
اشپزخانه:(اَش-پَز-خا-نه)اسم- مؤنث- باورچی خانه- هغه ځایٔ چې پکښې اخلے پخلے کیږی- جارګے- (م- فارسی)-
اشپزی:(اَش-پَ-زی)اسم- دَ اشپز پېشه- خواړهٔ پخونه- نګولے پخونه-
اشپیر:(اَش-پیر)اسم- واحد- مذکر- شور- زوږ- (۲)غوبمنب- (۲)پهٔ غېر مهذب طریقې سره را جمع کېدنه- (۴)انډوخر- جمع اشپیران- اشپیرُونه-
اشتباه:(اِش-تِ-باه)اسم- واحد- مذکر- اړنګ- وټ- ګُومان- شک شبه- (م- عربی)-
اشتباهی:(اِش-تِ-با-هی)اسم صفت- شکی- غېر یقینی- (م- عربی)-
اشتر:(اش-تر)اسم- واحد- مذکر- دَ اَس دَ تانګ تسمه- جمع اشترونه-
(م- فارسی)-
اشتراک:(اِش-تِ-راک)اسم- (۱)ګډون کونه- شرکت کونه- (۲)ګډون- شرکت- (۲)دَ اخبار یا مجلې خریدار کېدنه- (افغانستان)-
اشتراکی:(اِش-تِ-را-کی)اسم- دَ اشتراکیت سره منسوب-
اشتراکیت:(اِش-تِ-را-کی-یت)اسم- هغه سیاسی او معاشی نظام چې مقصد یې دَ کارل مارکس اینګلز او لېنن دَ فلسفو دَ لاندې یوه غېر طبقاتی معاشره او دَ کمیونسټ پارټۍ اقتدار راوستل دی-
اشتعال:(اِش-تِ-عال)اسم- واحد- مذکر- (۱)بلونه- دَ اور لمبه زیاتونه- (۲)پهٔ جوش او غُصه کښې راوستنه- اودهٔ جذبات را پارونه- (م- عربی)-
اشتغ:(اَش-تَغ)اسم- واحد- مذکر- اشتک- دَ یوې میوې نوم- خُرمانۍ- شلیکے-
اشتغال:(اِش-تِ-غال)اسم- بوختېدنه- لګیاکېدنه- مشغولېدنه- (م- عربی)-
اشتقاق:(اِش-تِ-قاق)اسم- دَ یوې کلمې نه بله راوکښنه- (م- عربی)-
اشتک:(اَش-تَک)اسم- واحد- مذکر- وُچ زرد الو- شلیکے- کښته- وګورئ اشتغ-
اشتمال:(اِش-تِ-مال)اسم- (۱)شاملونه- ګډونه- (۲)دَ زمکو دَ وړو وړو ټوټو یو ځایٔ کونه- دَ محکمه مال اصطلاح-
اشتمالی:(اِش-تِ-ما-لی)اسم صفت- اشتمال سره منسوب- کمیونسټ-
اشتمالیت:(اِش-تِ-ما-لی-یت)اسم- اشتراکیت- کمیونزم- (م- عربی)-
اشتوکه:(اَش-تو-که)اسم- واحد- مؤنث- روغه جوړه- صُلح- اشتی- (۲)دوستی(ش- فارسی- اشتی)-
اشتها:(اِش-تِ-ها)اسم- واحد- مؤنث- خواهش- رغبت- لوږه- (م- عربی)-
اشتهار:(اِش-تِ-هار)اسم- واحد- مذکر- (۱)څرګندونه- اوڅارونه- شهرت- (۲)څرګندېدنه- (۲)څرګندونه- اعلان- هغه لیکلے یا چاپ شوے کاغذ چې دَ هغې پهٔ ذریعه دَ څهٔ څیز مشهورتیا وکړے شی- جمع اشتهارونه- (م- عربی)-
اشتهاری:(اِش-تِ-ها-ری)اسم صفت- اشتهار سره منسوب-
اشتی:(آش-تی)اسم- واحد- مؤنث- صلح- دوستی- صلح جونی- (م- فارسی)-
اشتیاق:(اِش-تِ-یاق)اسم- (۱)شوق- خله- غُښتنه- آرزو- خواهش- طلب- (۲)شوق- (م- عربی)-
اشخار:(اَش-خار)اسم- جمع- مذکر- شخار- تورکاړ- هغه څیز چې دَ زومی نومې بوټی نه حاصلیږی او دَ جامو پهٔ وینځلو کښې پکارولے شی- سجی- اشقار- شقار- وګورئ شخار-
اشخاص:(اَش-خاص)اسم- جمع- مذکر- دَ شخص جمع- شخص دَ تن، فرد، کس (دَ مذکر او مؤنث دواړو دَ پاره پکاریږی)- واحد شخص-
اشخورکه:(اَش-خو-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو یو خاص قسم واسکټ- جمع اشخورکې-
اشر:(اَ-شَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)بلندره- بګړه- بسکره- ټینګه- پکاړه-

ی" (ښی-زِل)، ې"(مې-ره-وِل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

جمع اشرونه- (۲)د یو کار د پاره جمع کېدنه- (۳)په شریکه کار کونه- (۴)په جمع د امداد په بول مفت یو کار کونه-

اشرار:(اش-رار)اسم- جمع- مذکر- د شریر جمع- شرارتیان-

اشراف:(اش-راف)اسم- جمع- مذکر- نېکان- واحد اشرف- (جمع اشرافان)-

اشرافیت:(اش-را-فی-یت)اسم صفت- د اشراف کېدو حالت-

اشرافیه:(اش-را-فی-یه)اسم- اشراف نامه- د شریفانو طبقه-

اشرباندے:(اَ-شر-بان-دے)اسم صفت- مذکر- په اشر کښې شریک فرد-

اشربانړے:(اَ-شر-بان-ړے)اسم صفت- مذکر- وګورئ اشرباندے-

اشربانړے:(اَ-شر-با-ړے)اسم صفت- وګورئ اشرګر-

اشرپۍ:(اش-ره-پۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اشرفی-

اشرف:(اش-رف)اسم صفت- واحد- مذکر- ډېر شریف-

اشرفی:(اش-ر-فی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اشرپۍ- د سروزرو یوه سکه چې تقریباً شپږ ماشې به وه- (م- عربی)-

اشرګر:(اَ-شر-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- د اشر ملګرے- اشربانړے- اشرګرندے- اشرګندے- جمع اشرکری-

اشرګرندے:(اَ-شر-ګرن-دے)اسم صفت- وګورئ اشرګر- جمع اشرګرندی-

اشرګندے:(اَ-شر-ګن-دے)اسم صفت- وګورئ اشرګر- جمع اشرګندی-

اشرنشر:(اَ-شر-ن-شر)اسم- واحد- مذکر- (۱)قیامت- د محشر ورځ- حشرنشر- (۲)غوبمنډ- شور و غوغا- زوږ- الغاژ تلغاژ-

اشری:(اَ-ش-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کورنے مست او شهوتی خناور- سانډ- (۲)بد عمله- کنجر- شهوتی- (۳)وګورئ اشرګر- (۴)بد اخلاق-

اشعار:(اش-عار)اسم- جمع- مذکر- د شعر جمع- منظوم کلام- (م- عربی)-

اشغالول:(اش-غا-ل-ول)مصدر متعدی- (۱)نیول- (۲)لاندې کول- (۳)تصرف کول- (م- عربی اشغال)-

اشغالولے:(اش-غا-ل-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اشغالولی- مؤنث اشغالولې- وګورئ اشغالول-

اشغالون:(اش-غا-ل-ون)حاصل مصدر- وګورئ اشغالول-

اشغالونګ:(اش-غا-ل-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اشغالول-

اشغالونه:(اش-غا-ل-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اشغالول-

اشغالونکے:(اش-غا-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اشغالونکی- مؤنث اشغالونکې- وګورئ اشغالول-

اشغالېدل:(اش-غا-لې-دل)مصدر لازم- (۱)نیولے کېدل- (۲)لاندې کېدل- تصرف کېدل (افغانستان)-

اشغالېدلے:(اش-غا-لې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اشغالېدلی- مؤنث اشغالېدلې- وګورئ اشغالېدل-

اشغالېدن:(اش-غا-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اشغالېدل-

اشغالېدنګ:(اش-غا-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اشغالېدل-

اشغالېدنه:(اش-غا-لې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ اشغالېدل-

اشغالېدونکے:(اش-غا-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اشغالېدونکی- مؤنث اشغالېدونکې- وګورئ اشغالېدل-

اشک:(آ-شک)اسم- واحد- جمع- هغه اوښکې اوره چې د وریږو د دېګ خوله پرې بندوی-

اشکال:(اش-کال)اسم- جمع- مذکر- صورت- واحد شکل- (م- عربی)-

اشکال:(اش-کال)اسم- مشکلونه- ګرانونه- (م- عربی)-

اشکوڼے:(اش-کو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرشوکاری- هرشوکاڼی-سرشکوونے- (۲)د ماشومانو یوه لوبه چې یو هلک یو کاڼے لرې ارتاؤ کړی- بیا ټول هلکان ورپسې ورمنډه کړی- هر څوک چې هغه کاڼے را واخلی نو هلکان د هغه غوړونه تاووی- او وېښته یې شوکوی او دا کوشش کوی چې هغه نه کاڼے واخلی- هر یو هلک چې کاڼے بیرته ارتاوونکی ته وورسوی- نو د هغه شی- خرړونه کېږی خرړولې کېږی- تور کاڼے-

اشکے:(اش-کے)د تحسین کلمه- شاباشے-

اشلوک:(اش-لوک)اسم- جمع- مذکر- (۱)منظوم کلام- (۲)د هندوانو د کتاب "وېد" ایت (م- سنسکرت)- (۳)بدله- شعر-

اشنا:(اش-نا)اسم- واحد- مذکر- د بېګانه ضد- پېژندګلو- پېژندوئ- دوست- یار- خبردار- هغه نر یا ښځه چې بل نر یا ښځې سره جنسی محبت کوی- جمع اشنایان-

اشنا پرست:(اش-نا-پ-رست)اسم صفت- وفادار- قدردان- د ملګرو قدر کونکے-

اشناکول:(اش-نا-ک-ول)مصدر متعدی- دوست کول- ملګرے کول- پېژندګلو کول-

اشناکېدل:(اش-نا-کې-دل)مصدر لازم- دوست کېدل- ملګرے کېدل- پېژندګلو کېدل-

اشنان:(اش-نان)اسم- جمع- مذکر- زومی- غاسول- بروخه- یو واښه چې وسوزی نو ایره یې د جامو په وینځلو کښې پکارولے شی- نباتاتی نوم هانی سوپس افسی نیلس (یو قسم)- (م- فارسی)-

اشنائی:(اش-نا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- پېژندګلی- پېژندګلوی- یارانه دوستانه- جمع اشنایانې-

اشنایا:(اش-نا-یا)اسم- واحد- مذکر- پیژندګلی- اشناکېدنه- دوستی کونه-

اشنل:(اش-نل)مصدر- وګورئ اوشنل-

اشو:(اَ-شو)اسم- په کېږه، صافی، لته یا بل څه څیز د کور د خونې یا انګڼ پا کونه- (م- فارسی)- (۲)د کتاب حاشیې- (جمع)- (م- حاشیه عربی)- (۲)مقدّس- پاک- سپېځلے- (صفت)-

اشوا:(اش-وا)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- شرمنده- رسوا-

اشواتوب:(اش-وا-توب)اسم- شرمندګی- رسوائی- اشواتیا-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوړ)، "ه"(ز-ره)، "ۀ"(یو-بې-دهٔ)

اشواتیا:(اَش-وا-تیا)اسم- وګوریٔ اشواتوب-

اشواره:(اَش-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- بې حیا- بې شرمه ښځه- جمع اشوارې-

اشواینه:(اَش-وا-یهٔ-نه)اسم صفت- وګوریٔ اشوا (م- غالباً دَ عربی افشا)-

اشوب:(اَ-شوب)اسم- واحد- مذکر- انګل- پېلات- شور و غوغا- الغاژ تلغاژ- فتنه او فساد- انقلاب- (م- فارسی)-

اشوراند:(اَ-شو-راند)اسم صفت- واحد- مذکر- وران- وران کارے- جمع اشوراندی- مؤنث اشورانده- جمع مؤنث اشوراندې-

اشورک:(اَش-ورک)اسم- واحد- مذکر- ځغه دوائی چې دَ اوری، حلق او غاښونو دَ علاج دَ پاره پکارولے شی- (۲)دوړه-

اشورک:(اَ-شو-رک)اسم- واحد- مذکر- (۱)شه رګ- غټ رګ- (۲)حرکت- خوزېدنه-

اشول:(اَ-شول)اسم- واحد- مذکر- چغې- نارې- ژړا- فریاد- شور و غوغا- جمع اشولونه-

اشول:(اَ-شول)اسم- نس خوږے- پېچش- شوله-

اشویرانګ:(اَش-وی-رانګ)اسم- واحد- مذکر- وګوریٔ اښویران-

اشوېشانے:(اَش-وې-شا-نے)اسم- واحد- مذکر- شک- ګومان- تشویش- جمع اشویشانی-

اشوېشن:(اَش-وې-شن)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- تشویش کونکے- شک کونکے- ګومان کونکے-

اشوېشے:(اَش-وې-شے)اسم- جمع- مؤنث- اکامی- نښې- پوهېدنه-

اشه:(اَ-شه)اسم صوت- واحد- مؤنث- دَ خرهٔ شړلو آواز- اچه- جمع اشې-

اشیا:(اَش-یا)اسم- جمع- مذکر- (۱)څیزونه- شایونه- شیونه- (۲- صفت)بې ښې توښې- بې کاره- فضول- (۲)بلا- بو- اَشا-

آشیانه:(آش-یا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ځاله- منځاله- منځولے- جاله- (۲)کور- دَ استوګې ځاې-

اشے ماشے:(اِ-شے-ما-شے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو دَ یوې لوبې نامه-

اښ:(اَښ)اسم- واحد- مذکر- فکر- تأمل- سوچ-

اښ:(اُښ)حرف ندا- دَ خرهٔ او اوښ دَ شړلو یا منع کولو دَ پاره یو آواز-

اښکی:(اَښ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوریٔ اوښکه-

اښوه:(اښ-وه)اسم- تلوسه- دَ زړهٔ غوارنه- تمنّا- آرزو-

اښویران:(اَښ-وی-ران)اسم- (۱)اشویرانګ- وېښا- خبرې- ګفتګو- قیصې قطارې- (۲)لګړبګړ- کوږ-

اښے:(اَ-ښے)اسم- واحد- مذکر- دمه- آرام- پړه لګونه- څهٔ ساعت تېرونه- سوکه توب- ساهیله-

اصحاب:(اَص-حاب)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ صاحب جمع الجمع- ملګری- ملونه- یاران- (۲)دَ حضور صلی الله علیه وسلم پهٔ مبارکه زمانه کښې مُسلمانان شوی او دَ ایمان پهٔ حالت کښې وفات شوی کسان- مؤنث صحابیه- جمع صحابیانې-

اصحابِ صفه:(اَص-حا-بې-صُف-فا)اسم- جمع- دَ اصحابو هغه ټولے چې مر وخت به پهٔ مسجد نبوی کښې پهٔ عبادت کښې مشغول وهٔ-

اصحاب فیل:(اَص-حا-بې-فیل)اسم- جمع- دَ هاتیانو خاوندان- دَ ابرهه لښکر-

اصحاب کهف:(اَص-حا-ب-کَ-هف)اسم- دَ غار خاوندان- دَ خپلې زمانې هغه مسلمانان چې پهٔ قرآن شریف کښې یٔ پهٔ سورة کهف کښې قیصه بیان شوې ده-

اصرار:(اِص-رار)اسم- (۱)ضد- تکرار- ټینګار- (۲)تاکید- (م- عربی)-

اصراف:(اِص-راف)اسم- خرڅ کونه- صرف کونه- (م- عربی)-

اصطباغ:(اِص-ط-باغ)اسم- دَ مسیحیت یو مذهبی رسم چې پهٔ ماشوم دَ نامې اېښولو یا دَ چا دَ مسیحیت دَ اختیارولو پهٔ وخت ادا کولے شی- ماشوم او مسیحیت قبلونکے پهٔ اُبو رنګولے شی- بپتسمه- (م- عربی)-

اصطبل:(اِص-طَ-بل)اسم- واحد- مذکر- طوېله- طبېله- دَ اَسونو دَ ساتنې ځاې-

اصطلاح:(اِص-ط-لاح)اسم- واحد- مؤنث- دَ یوې علمی یا فنی ډلې لهٔ خوا یو لفظ دَ خپل اصل مفهوم نه بغېر پهٔ نورو معنو کښې استعمالونه- جمع اصطلاحات- (م- عربی)-

اصطلاحی:(اِص-ط-لا-حی)اسمِ صفت- دَ اصطلاح سره تعلق لرونکے- وګوریٔ اصطلاح-

اصل:(اَ-صل)اسم- واحد- مذکر- (۱)نوغے- جرړه- جړه- بېخ- بُنیاد- (۲)نسب- منبع- (۲)سُوچه-

اصل:(اَ-صل)اسم- واحد- مذکر- زرکانے- دَ سرو زرو دَ اصلیت معلومونکے کانے-

اصلاً:(اَص-لَن)متعلق فعل- پهٔ اصل کښې- (۲)مرکز- (۲)هېڅ کله-

اصلاح:(اِص-لاح)اسم- صحیح کونه- صُلح راوستنه- سمونه- نقص لرې کونه- (م- عربی)-

اصلاحی:(اِص-لا-حی)اسم صفت- اصلاح سره متعلق- وګوریٔ اصلاح-

اصلی:(اَص-لی)اسم صفت- خالص- سوچه- دَ نقلی ضد-

اصلی:(اَص-لی)اسم صفت- واحد- مؤنث- یو تُخم چې دَ ځناور ریخی دَ پاره استعمالیږی-

اصلیت:(اَص-لی-یت)اسم- حقیقت- خالص توب- (م- عربی)-

اصناف:(اَص-ناف)اسم- جمع- مذکر- قسمونه- واحد صنف- (م- عربی)-

اصنام:(اَص-نام)اسم- جمع- مذکر- دَ کانی بُوتان- (۲) معشوقې (شاعرانه)- دَ صنم جمع- (م- عربی)-

اصوات:(اَص-وات)اسم- جمع- مذکر- آوازونه- واحد صوت-

اصول:(اُ-صول)اسم- جمع- مذکر- دَ اصل جمع- قاعدې- قانون- آئین- لار- اساسات- بنادونه- طریقې- جمع اُصولونه-

ی" (څی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګوریٔ تشریحات صفحه ۱

اصولاً:(أ-صو-لَن)متعلق فعل- دَ أصولو په ډول-

اصولنامه:(أ-صولَ-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)منشور- لائحه- اساسنامه- تعليمات نامه- (۲)دَ دولتي تشكيل مربوط مقررات- (افغانستان)-

اصولي:(أ-صو-لي)صفت- دَ اصول سره متعلق- په أصولو ټينګ ولاړ- دَ أصولو دَ علم ماهر-

اصيل:(أ-صيل)اسم صفت- مذكر- (۱)دَ مرئي ضد- (۲)دَ سركش ضد- اموخته شوے- دَ ښه نسب سره متعلق- سوچه- درونډ- شريف-

اصيل توب:(أ-صيل-توب)اسم- درونډوالے- ښه سړيتوب- ښه والے- سوچه والے- اصيل والے- اموخته والے-

اصيل والے:(أ-صيل-وا-لے)اسم- وګورئ اصيل توب-

اضافت:(ا-ضا-فت)اسم- زياتونهل- تپنه- پورې كونه- نسبت كونه- يو څيز بل سره نښلونه- (عربي)-

اضافه:(ا-ضا-فه)اسم- زياتے- زياتي- ترقي- (م- عربي)-

اضافي:(ا-ضا-في)صفت نسبتي- هغه صفت چې اصلي نه وي- (۲)مددګار- مددكونكے- (۳)زياتي- فالتو- (م- عربي)-

اضافيت:(ا-ضا-في-يت)اسم- (۱)زياتوالے- زياتے- (۲)دَ آئن سټائن مشهوره نظريه چې دَ هغې مطابق په كائناتو كښې حركت اضافي او نسبتي نوعيت لري- (م- عربي)-

اضحے:(اَض-حا)اسم- واحد- مذكر- (۱)دَ لوئ اختر قرباني- (۲)قرباني- (م- عربي)-

اضداد:(أض-داد)اسم- جمع- مذكر- متضاد څيزونه- واحد ضد-

اضطراب:(اض-ط-راب)اسم- (۱)تراره- ترهورتيا- پرېشاني- (۲)برقي اضطرابات- برقي چپه- شاټ- جمع اضطرابات- (م- عربي)-

اضطرابي حالت:(اض-ط-را-بي-حا-لت)اسم مركب- دَ بې آرامي حالت- هنګامي حالت- (م- عربي)-

اضطرار:(اض-ط-رار)اسم- بې قراري- اوتري- بې اختياري- (م- عربي)-

اضطراري:(اض-ط-را-ري)اسم- دَ اضطرار په ډول- اوتري- (م- عربي)-

اضل:(أ-ضل)اسم تفضيل- ډېر ګمراه- ډېر ښوئېدلے- (م- عربي)-

اضلاع:(أض-لاع)اسم- جمع- مذكر- پښتي- طرفونه- دَ ضلع جمع- څنو ملكونو كښې دَ يو جغرافيائي وحدت نوم- (م- عربي)-

اضمحلال:(اض-مح-لال)اسم- سستي- پژمردګي- كاهلي- كمزوري- (م- عربي)-

اطاعت:(ا-طا-عت)اسم- مننه- غاړه اېښودنه- فرمانبرداري- (م- عربي)-

اطراف:(أط-راف)اسم- جمع- مذكر- (۱)اړخونه- طرفونه- لرې خايونه- واحد طرف- (۲)خوا و شا- (۳)په باره كښې- (م- طرف عربي/فارسي)-

اطرافي:(أط-را-في)اسم- (۱)دَ ښار نه دَ باندې وسېدونكے- (۲)دَ كلي وسېدونكے-

اطفال:(أط-فال)اسم- جمع- مذكر- (۱)واړه- ماشومان- بچي- (۲)نا پوهه- واحد طفل- (م- عربي)-

اطلاع:(اط-لاع)اسم- خبر- نوټس- اعلان- خبرداري- جمع اطلاعات- [م- عربي اطّلاع (افتعال باب)]-

اطلاعاً:(اط-لا-عَن)متعلق فعل- دَ اطلاع په ډول-

اطلاعات:(اط-لا-عات)اسم- جمع- وګورئ اطلاع-

اطلاعنامه:(اط-لاغ-نا-مه)اسم- خبر نامه- حكم نامه-

اطلاق:(اط-لاق)اسم- عامه معنى- دَ يوې معنې په يو لفظ يا كار برابرېدنه- دَ يو قانون په يو عمل برابرېدنه- (م- عربي)-

اطلس:(أط-لس)اسم- واحد- مذكر- (۱)يو قسم توره ځليدونكې ريښمي كپړه- (۲)ساده بې نقشه- (۳)دَ يو سمندر نامه-

اطلسي:(أط-له-سي)اسم صفت- دَ اطلس سره متعلق- (م- عربي)-

اطمينان:(اط-مي-نان)اسم- تسلي- دلاسه- صبر- ډاډ- (م- عربي)-

اطوار:(أط-وار)اسم- جمع- مذكر- (۱)روشونه- طور- طريقې- دَ طور جمع- (۲)عادتونه-

اطهار:(أط-هار)اسم- جمع- مذكر- دَ طاهر جمع- پاك سړي- (م- عربي)-

اطهر:(أط-هر)اسم تفضيل/صفت- ډېر پاك- زيات پاكيزه- (م- عربي)-

اظلم:(أظ-لم)اسم صفت- (۱)ډېر ظالم- (۲)تكليف كونكے- (م- عربي)-

اظهار:(اظ-هار)اسم- (۱)څرګندونه- ښكاره كونه- (۲)بيان وركونه- (۲)شهادت وركونه- زباني بيان- (م- عربي)-

اظهار نامه:(اظ-هار-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- اعلان- اشتهار- جمع اظهار نامې-

اظهارول:(اظ-ها-ر-ول)مصدر متعدي- ظاهرول- پرانستل- څرګندول- ښكاره كول- (م- عربي)-

اظهارولے:(اظ-ها-ر-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع اظهارولي- مؤنث اظهارولې- وګورئ اظهارول-

اظهارون:(اظ-ها-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ اظهارول-

اظهارونګ:(اظ-ها-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اظهارول-

اظهارونه:(اظ-ها-ر-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اظهارول-

اظهارونكے:(اظ-ها-ر-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع اظهارونكي- مؤنث اظهارونكې- وګورئ اظهارول-

اظهارېدل:(اظ-ها-رې-دل)مصدر لازم- ظاهرېدل- څرګندېدل- ښكاره كېدل- (م- عربي)-

اظهارېدلے:(اظ-ها-رې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع اظهارېدلي- مؤنث اظهارېدلې- وګورئ اظهارېدل-

اظهارېدن:(اظ-ها-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اظهارېدل-

اظهارېدنګ:(اظ-ها-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اظهارېدل-

اظهارېدنه:(اظ-ها-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ اظهارېدل-

اظهارېدونكے:(اظ-ها-رې-دون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع

اظهارېدونکی- مؤنث اظهارېدونکې- وګورئ اظهارېدل-

اظهارېدهٔ:(اظ-ها-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اظهارېدل-

اظهر:(اَظ-هَر)اسم صفت تفضیل- ډېر ظاهر- ښهٔ ښکاره- (م- عربی)-

اظهر من الشمس:(اَظ-هه-رو-مِن-نَش-شَمس) اسم صفت- دَ نمر نه زیات ښکاره- (م- عربی)-

اعاده:(اِ-عا-ده)اسم- (۱)دوباره کونه- سر دوباره کونه- ګرځونه- بیرته کونه- رایادونه- (۲)غور کونه- (۳)دَ پور پرېکړه- (افغانستان)- (م- عربی)-

اعادی:(اِ-عا-دی)اسم صفت- جمع- مذکر- دښمنان- دَ عدو جمع- (م- عربی)-

اعانت:(اِ-عا-نَت)اسم- واحد- مذکر- حمایت- مدد- امداد- مرسته- کومک لاس ورکونه- (م- عربی)-

اعتبار:(اِع-تِ-بار)اسم- (۱)اتبار- ویسا- یقین- (۲)قیام- ثبات- (۳)لحاظ- (۴)زغومند-

اعتباری:(اِع-تِ-با-ری)صفت- دَ اعتبار سره منسوب- باوری- یقینی- اتباری- (م- عربی)-

اعتدال:(اِع-تِ-دال)اسم- میانه روی- نهٔ کمی نهٔ بیشی- برابری- (م- عربی)-

اعتذار:(اِع-تِ-ذار)اسم- واحد- مذکر- بخښنه- غښتنه- عُذر غښتنه-

اعتراض:(اِع-تِ-راض)اسم- کته نیونه- شک کونه- نُکته چینی کونه- عیب راوکښنه- جمع اعتراضات- (م- عربی)-

اعتراف:(اِع-تِ-راف)اسم- مننه- ذمه واری مننه-اقرار کونه- تسلیمونه- اقبال کونه-

اعتقاد:(اِع-تِ-قاد)اسم- عقیده ساتنه- یقین لرنه- اعتبار کونه- باور کونه- (م- عربی)-

اعتکاف:(اِع-تِ-کاف)اسم- دَ روژې دَ میاشتې پهٔ اٰخری لسو ورځو کښې دَ عبادت دَ پاره دَ خلقو نه بیل (عام طور سره جماعت کښې) کښېناستنه- جمع اعتکافونه- (م- عربی)-

اعتماد:(اِع-تِ-ماد)اسم- ویسا- ډاډ- یقین- اعتبار- (م- عربی)-

اعتمادی:(اِع-تِ-ما-دی)اسم صفت- دَ اعتماد قابل- جمع اعتمادیان- (م- عربی)-

اعتنا:(اِع-تِ-نا)اسم- (۱)پام کونه- توجه کونه- (۲)پام- (م- عربی)-

اعجاز:(اِع-جاز)اسم- عاجز کونه- معجزه- کرامت- کرشمه- (م- عربی)-

اعجم:(اَع-جَم)اسم صفت- ګړکېچړ- هغه چې ژبه يې ډېره نښلي- (م- عربی)-

اعجمی:(اَع-جه-مي)اسم صفت- (۱)چاړا- (۲)دَ اعجم سره منسوب- (۳)غیر عرب- (م- عربی)-

اعجوبه:(اَع-جو-به)اسم- واحد- مؤنث- تماشا- عجیبه څیز- نا اشنا څیز- (م- عربی)-

اعداد:(اَع-داد)اسم- جمع- مذکر- شمېر- شمار- هندسې- عددونه- واحد عدد-

اعدام:(اِع-دام)اسم- دَ مرګ سزا ورکونه- (افغانستان)- (م- عربی)-

اعدامول:(اِع-دا-م-وَل)مصدر متعدی- دَ مرګ سزا ورکول (افغانستان)-

اعدامولے:(اِع-دا-مه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اعدامولی- مؤنث اعدامولې- وګورئ اعدامول-

اعدامون:(اِع-دا-م-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اعدامول-

اعدامونګ:(اِع-دا-م-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اعدامول-

اعدامونکے:(اِع-دا-م-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اعدامونکی- مؤنث اعدامونکې- وګورئ اعدامول-

اعدامونه:(اِع-دا-م-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اعدامول-

اعدامېدل(اِع-دا-مې-دَل)مصدر لازم- دَ مرګ سزا ورکېدل- (افغانستان)-

اعدامېدلے:(اِع-دا-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اعدامېدلی- مؤنث اعدامېدلې- وګورئ اعدامېدل-

اعدامېدن:(اِع-دا-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اعدامېدل-

اعدامېدنګ:(اِع-دا-مې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اعدامېدل-

اعدامېدونکے:(اِع-دا-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اعدامېدونکی- مؤنث اعدامېدونکې- وګورئ اعدامېدل-

اعدامېدهٔ:(اِع-دا-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اعدامېدل-

اعراب:(اَع-راب)اسم- جمع- مذکر- دَ اعرابی جمع- دَ عربو کلی وال- بانډیګیان- (عربی)-

اعراب:(اِع-راب)اسم- واحد- مذکر- هغه نالې چې دَ زیمناکو زمکو دَ زیم لرې کولو پهٔ غرض کنستلې شوې وی- اراب- اېراب- جمع اعرابونه- (م- عربی)-

اعراب:(اِع-راب)اسم- جمع- مذکر- دَ حرفونو حرکات- زور، زېر، پېش وغیره- (م- عربی)-

اعرابی:(اَع-را-بی)اسم- واحد- مذکر- دَ عربو دَ بانډو وسېدونکے- بانډیګی- بدو- (عربی)-

اعراض:(اِع-راض)اسم- واحد- مذکر- (۱)مخ اړونه- مخ ګرځونه- څهٔ ته شا کونه- (۲)انکار- بې رخی-

اعراف:(اَع-راف)اسم- مذکر- (۱)دَ جنّت او دوزخ تر مینځه یو مقام- (۲)دَ قرآن پاک دَ یو سُورت نوم- (۳)وُچت ځاې- (۴)دَ چرګ چارخولګ- دَ چرګ کرکره- دَ چرګ تاج- (م- عربی)-

اعزاز:(اِع-زاز)اسم- جمع- مذکر- عزت- مرتبه- رتبه- درجه- جمع الجمع اعزازات- (م- عربی)-

اعشاری:(اَع-شا-ری)صفت- (۱)لسو سره متعلق دَ هندسو یوه طریقه چې دَ صحیح عدد نه پس یو نقطه یا دَ "،" نښه واچولے شی او لهٔ دې نه پس ته هره هندسه دَ راتلونکی هندسې نه یو پهٔ لس زیاته وی- (۲)دَ سکې، تول او ناپ هغه نظام چې پکښې مختلف یونټونو نه دَ خپل ځان نه کم یونټونه

ئ (ځې-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

یو پهٔ لس زیات وی- (م- عربی)-

اعشاریه:(اِع-شا-ری-یه)اسم- هغه نقطه یا دَ "ء" نښه چې دَ صحیح هندسې نه پس دَ کسر ښکاره کولو دَ پاره لګی- (م- عربی)-

اعصاب:(اَع-صابّ)اسم- جمع- مذکر- دَ عصب جمع- پلې- (م- عربی)-

اعصابی:(اَع-صا-بی)اسمِ صفت- دَ رېشو یا دَ پلو سره تعلق لرونکے (م- عربی)-

اعضا:(اَع-ضا)اسم- جمع- مذکر- اندامونه- دَ عضو جمع- غړی- (م- عربی)-

اعطا:(اَع-طا)اسم- بخښنه- ښاندهٔ- (م- عربی)-

اعظم:(اَع-ظَم)اسمِ صفت/تفضیل- (۱)ډېر لوئ- ډېر ستر- (۲)دَ خدائ پاک یو نُوم-

اعظمی:(اَع-ظَ-می)اسمِ صفت- (۱)پهٔ زیاته اندازه- زښت ډېر- خورازیات- (۲)آخرنی اندازه- وروستنے ټکے- پورتنی څوکه (افغانستان)-

اعلام:(اِع-لامّ)اسم- واحد- مذکر- (۱)خبر- اګاهی- (۲)دَ علم جمع- جنډې- نُومونه-

اعلامول:(اِع-لا-مَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)خبرول- اګاه کول- (۲)مشهورول- معلومول- څرګندول- (م- عربی)-

اعلامولے:(اِع-لا-مَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اعلامولی- مؤنث اعلامولې- وګورئ اعلامول-

اعلامون:(اِع-لا-مَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اعلامول-

اعلامونګ:(اِع-لا-مَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اعلامول-

اعلامونکے:(اِع-لا-مَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اعلامونکی- مؤنث اعلامونکې- وګورئ اعلامول-

اعلامیه:(اِع-لا-می-یه)اسم- مؤنث- دَ څهٔ واقعې پهٔ باب کښې اطلاع خورېدنه- (م- عربی)-

اعلامیه:(اِع-لا-می-یه)اسم- واحد- مؤنث- هغه فیصله چې دَ دوو پلو یا دوو حکومتونو دَ ګډ نظر پهٔ پایٔ کښې خورېږی- دَ حکومت یا کومې ډلې یا ادارې لهٔ خوا دَ عامې خبرتیا پهٔ غرض نشر شوے اعلان-

اعلامېدل:(اِع-لا-مې-دَل)مصدر لازم- څرګندېدل- خبرېدل- خپرېدل- نشرکېدل- مشهورېدل- خورېدل-

اعلامېدلے:(اِع-لا-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اعلامېدلی- مؤنث اعلامېدلې- وګورئ اعلامېدل-

اعلامېدن:(اِع-لا-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اعلامېدل-

اعلامېدنګ:(اِع-لا-مې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اعلامېدل-

اعلامېدونکے:(اِع-لا-مې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اعلامېدونکی- مؤنث اعلامېدونکې- وګورئ اعلامېدل-

اعلامېدهٔ:(اِع-لا-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اعلامېدل-

اعلان:(اِع-لانّ)اسم- څرګندونه- ظاهرونه- پهٔ جار خبر ورکونه- جار وهنه- (م- عربی)-

اعلانول:(اِع-لا-نَ-وَل)مصدر متعدی- ظاهرول- پهٔ جارخبر ورکول- څرګندول- پهٔ ډاګه وئیل-

اعلانولے:(اِع-لا-نَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اعلانولی- مؤنث اعلانولې- وګورئ اعلانول-

اعلانون:(اِع-لا-نَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اعلانول-

اعلانونکے:(اِع-لا-نَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اعلانونکی- مؤنث اعلانونکې- وګورئ اعلانول-

اعلانونګ:(اِع-لا-نَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اعلانول-

اعلانوهٔ:(اِع-لا-نَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اعلانول-

اعلیٰ:(اَع-لا)اسم تفضیل/صفت- مذکر- ډېر وُچت- ډېر لوړ- زیات ښهٔ- ډېر ښهٔ- ډېر لوئ- (م- عربی)-

اعلانېدل:(اِع-لا-نې-دَل)مصدر لازم- ظاهرېدل- پهٔ جار خبر ورکېدل- څرګندېدل- ښکاره کېدل-

اعلانېدلے:(اِع-لا-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اعلانېدلی- مؤنث اعلانېدلې- وګورئ اعلانېدل-

اعلانېدن:(اِع-لا-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اعلانېدل-

اعلانېدنګ:(اِع-لا-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اعلانېدل-

اعلانېدونکے:(اِع-لا-نې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اعلانېدونکی- مؤنث اعلانېدونکې- وګورئ اعلانېدل-

اعلانېدهٔ:(اِع-لا-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اعلانېدل-

اعمال:(اَع-مالّ)اسم- جمع- مذکر- (۱)کړهٔ- چارې- کارُونه- دَ عمل جمع- (۲)دَ انجیل دَ یو کتاب نُوم-

اعمالنامه:(اَع-مال-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ عملونو کتاب- (۲)هغه کتاب چې پکښې فرښتې دَ انسان عملُونه لیکی- (م- عربی)-

اعمیٰ:(اَع-ما)صفت- ړوند- نابینا- (م- عربی)-

اعنی:(اَع-نی)فعل- واحد- متکلم- زهٔ یٔ دا معنیٰ کوم (دَ عالمانو اصطلاح) (م- عربی)-

اعوان:(اَع-وانّ)اسم- جمع- مذکر- مرسته کونکی- (م- عربی)-

اعوذ:(اَ-عُوذ)فعل- واحد- متکلم- زهٔ پناه غواړم- (م- عربی)-

اعوذ باالله:(اَ-عُو-ذُ-بل-لا)زهٔ دَ خدائ پناه غواړم- (م- عربی)-

اعیان:(اَع-یانّ)اسمِ صفت- جمع- مذکر- مشران- غټان- بُزرګان-

آغا:(آ-غا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بادار- څښتن- مالک- خاوند- (۲)ښاغلے- محترم- مُعزز- (۳)پلار ته دَ خطاب آواز- ابا جان- ابک- ابکو- ابکے- وادک- بابک- (م- ترکی- آغا)-

اغار:(اَ-غار)اسم- واحد- مذکر- چیپیا- چیپی- پانه- جمع اغارُونه-

اغاره:(اَ-غا-ره)اسم- واحد- مؤنث- رینه- دَ خپلو ګنډلو یو اوزار-

اغاز:(آ-غاز)اسم- واحد- مذکر- شروع- ابتدأ- (م- عربی)-

اغال:(آ-غال)اسم- واحد- مذکر- هغه ځائ چې پهٔ صحرا کښې پکښې دَ شپې

کړې بزې راپنډې وی- کاش- پنډغالے-

اغ چوغ:(اَغ-چوغ)اسم- چوقه وهنه- جک جک-

اغ دغ:(اَغ-دَغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مکر- فرېب- دوکه- اغدوغ- اغدوغ-
(۲)چلوټې- (۳)ټکی برکی-

اغ دوغ:(اغ-دوغ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اَغ دغ-

آغر:(آ-غر)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوږ- مانده- دَ سېلابی اُبو دَ تېرېدو
ځایْ (م- فارسی)- (۲- صفت)قابو- تیار-

اغر:(اَ-غر)فعل- دَ لیندې پهٔ ژی غشے دَ ویشتلو دَ پاره راکښنه-

اغراض:(اَغ-راض)اسم- جمع- مذکر- اړتیاګانې- حاجتونه- غرضونه-
مقصدونه- ارادې- نیتونه- (م- عربی)-

اغراق:(اغ-راق)اسم- (۱)ډوبونه- (۲)مبالغه کونه- ډوزې ویشتنه- (م- عربی)-

اغرکول:(اَ-غر-کَ-وَل)مصدر ترکیبی- غشے پهٔ ژی سوروَل-

اغروغ:(اَغ-روغ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اَغ دغ-

اغرین:(اُ-غ-رین)اسم- واحد- مذکر- دَ لیندې پهٔ ژی ختلے غشے- (م-
فارسی)-

اغز:(اَ-غز)اسم- واحد- مذکر- غز- اغوز- اکوړ- نباتاتی نوم جګ لانزرے
ګیا (JUG LANSREGIA)-

اغزکے:(اَغ-زَ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ازغکے-

اغزنول:(اَغ-زهٔ-نه-وَل)مصدر متعدی- ازغن کول- ازغی لګول-

اغزنولے:(اَغ-زهٔ-نه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغزنولے-
مؤنث اغزنولې- وګورئ اغزنول-

اغزنون:(اَغ-زهٔ-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اغزنول-

اغزنونکے:(اَغ-زهٔ-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغزنونکی-
مؤنث اغزنونکې- وګورئ اغزنول-

اغزنونګ:(اَغ-زهٔ-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغزنول-

اغزنېدل:(اَغ-زهٔ-نې-دَل)مصدر لازم- ازغن کېدل- ازغی لګېدل-

اغزنېدلے:(اَغ-زهٔ-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغزنېدلی-
مؤنث اغزنېدلې- وګورئ اغزنېدل-

اغزنېدن:(اَغ-زهٔ-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اغزنېدل-

اغزنېدنګ:(اَغ-زهٔ-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغزنېدل-

اغزنېدنه:(اَغ-زهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغزنېدل-

اغزنېدونکے:(اَغ-زهٔ-نې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغزنېدونکی-
مؤنث اغزنېدونکې- وګورئ اغزنېدل-

اغزنېدهٔ:(اَغ-زهٔ-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اغزنېدل-

اغزی:(اَغ-زی)اسم- جمع- مذکر- وګورئ ازغے-

اغزی اغزی:(اَغ-زی-اَغ-زی)صفت- لهٔ اغزیو ډک- خاردار-

اغزیانه:(اَغ-زیا-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- زیکه بیکه- ازغنه- اغزنه- دَ
ازغو ډکه- ازغن ځایْ-

اغزین:(اَغ-زین)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ازغی یا اغزی لرُونکے- (۲)ښه
دار-

اغزے:(اَغ-زے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ازغے- جمع اغزی-

اغړل:(اَ-غَ-ړَل)مصدر- وګورئ اخښل- (عامیانه)-

اغړلے:(اَ-غَ-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغړلی- مؤنث اغړلې-
وګورئ اغړل-

اغړن:(اَ-غَ-ړَن)حاصل مصدر- وګورئ اغړل-

اغړنګ:(اَ-غَ-ړَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغړل-

اغړنه:(اَ-غَ-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغړل-

اغړونکے:(اَ-غَ-ړُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغړونکی- مؤنث
اغړونکې- وګورئ اغړل-

اغستل:(اَ-غس-تَل)مصدر- جسم یا بل کوم څیز پهٔ جامو یا پهٔ بل څیز پټول-

اغستل:(اَ-غس-تَل)مصدر- وګورئ اخېستل- (عامیانه)-

اغستلے:(اَ-غس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغستلی- مؤنث
اغستلې- وګورئ اغُستل-

اغستلے:(اَ-غس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغستلی- مؤنث
اغستلې- وګورئ اخېستل-

اغستن:(اَ-غُس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ اغُستل-

اغستن:(اَ-غس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ اخېستل-

اغستنګ:(اَ-غُس-تَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغُستل-

اغستنګ:(اَ-غس-تَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اخېستل-

اغستنه:(اَ-غُس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغُستل-

اغستنه:(اَ-غس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اخېستل-

اغستونکے:(اَ-غُس-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغستونکی- مؤنث
اغستونکې- وګورئ اغُستل-

اغستونکے:(اَ-غس-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغستونکی- مؤنث
اغستونکې- وګورئ اخېستل-

اغستهٔ:(اَ-غُس-تهٔ) حاصل مصدر- وګورئ اغُستل-

اغستهٔ:(اَ-غس-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اخېستل-

اغشته:(اَ-غش-ته)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- الوده- لړلے تپلے- ککړ-
(م- فارسی)-

اغښل:(اَغ-ښَل)مصدر- وګورئ اخښل-

اغښلے:(اَغ-ښهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغښلی- مؤنث اغښلې-
وګورئ اغښل-

اغښن:(اَغ-ښَن)حاصل مصدر- وګورئ اغښل-

اغښنګ:(اَغ-ښَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغښل-

اغښنه:(اَغ-ښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغښل-

اغښونکے:(اَغ-ښُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغښونکی-

"ی" (ښی-رَل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

مؤنث اغښونکې- وګورئ اغښل-

اغل:(ا-غل)اسم- واحد- مذکر- (۱)پنړغالے- شپول- چار- کاره- دَ ګډو بزو د ودرولو ځاۓ- (۲)غوجل-

اغلاط:(اَغ-لاط)اسم- جمع- مذکر- تېروتنې- خطاوتنې- غلطی- (م- عربی)-

اغلام:(اَغ-لام)اسم- لواطت کونه- ملکانو سره بد فعلي کونه- بچه بازی- (م- عربی)-

اغلامی:(اغ-لا-مي)اسم صفت- ملکانے- بچه باز- جمع اغلامیان- (م- عربی)-

اغلب:(اَغ-لَب)اسم تفضیل/صفت- (۱)ډېر برلاسے- غالب تر- قوی- (۲)ګومان- دَ یقین سره نژدې- (م- عربی)-

اغلز:(اَغ-لَز)اسم صفت- واحد- مذکر- مکار-

اغلط:(اَغ-لَط)اسم تفضیل/صفت- ډېر غلط- ډېر خطا- (م- عربی)-

اغلف:(اَغ-لَف)اسم صفت- دوه زړے- منافق- (م- عربی)-

اغله:(آ-غهٔ-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- ښکلې- ښېمخې- ښائسته (ښځه)- جمع آغلې-

اغلے:(آ-غهٔ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ آغله- جمع آغلی-

اغما:(اغ-ما)اسم- بې سُره کونه- بې هوشه کونه- (م- عربی)-

اغماز:(اَغ-ماز)اسم- واحد- مذکر- غندنه- غمازی کونه-

اغماض:(اَغ-ماض)اسم- سترګې پټونه- بې پروائی کونه- (م- عربی)-

اغند:(ا-غند)اسم- هغه بُنیاد چې دَ وروستاړو په زیاتولو سره دَ اَغستل دَ حال او اَمر ګرامری شکلونه جوړه وی- لکه اغندی- واغنده-

اغنیا:(اَغ-نی-یا)اسم صفت- جمع- مذکر- دولت مند- مالداره- بډایان- (م- عربی)-

اغوا:(اغ-وا)اسم- (۱)پټونه- دَ لارې یستنه- لمسونه- وُچتونه- (۲)تښتونه- (م- عربی)-

اغوت:(اَ-غوت)صفت- جمع- مذکر- غنم یا بله غله چې دَ ډېر پروت والی لهٔ کبله نمژنه شی او روټی ئې بې خونده او دُوبژنه وی- چرېشنه غله- زړه غله-

اغود:(آ-غود)اسم صفت- هغه لوندهٔ غنم چې دَ تېغو رایستلو نه پس وُچ کړے شی- دَ سوُن حلوا دَ جوړولو دَ پاره دغه طریقه پکارولے شی-

اغودول:(آ-غو-دَ-ول)مصدر متعدی- غنم لوندول- لهٔ تېغو یستلو نه پس بیا وُچول-

اغودولے:(آ-غو-دَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغودولی- مؤنث اغودولې- وګورئ اغودول-

اغودون:(آ-غو-دَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ اغودول-

اغودونکے:(آ-غو-دَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغودونکی- مؤنث اغودونکې- وګورئ اغودول-

اغودونګ:(آ-غو-دَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اغودول-

اغودونه:(آ-غو-دَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغودول-

اغودېدل:(آ-غو-دې-دل)مصدر لازم- غنم لوندېدل- لهٔ تېغو یستلو نه پس بیا وُچېدل-

اغودېدلے:(آ-غو-دې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغودېدلی- مؤنث اغودېدلې- وګورئ اغودېدل-

اغودېدن:(آ-غو-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اغودېدل-

اغودېدنګ:(آ-غو-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغودېدل-

اغودېدنه:(آ-غو-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغودېدل-

اغودېدونکے:(آ-غو-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغودېدونکی- مؤنث اغودېدونکې- وګورئ اغودېدل-

اغودېدهٔ:(آ-غو-دې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اغودېدل-

اغور:(ا-غور)اسم- واحد- مذکر- لهٔ لرګی جوړه دَ ناستې پېړی یا چوکی چې عام طور سره دَ پخلی په ځاۓ کښې پکارولے شی-

اغور:(آ-غور)اسم- مذکر- اراده- تکل- دَ سفر تکل- (م- فارسی)-

اغور:(اَ-غور)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لرګی لنګرۍ- دَ لرګی اونګ یا بغری- (۲)تتی- دَ لرګی کاسه-

اغوړ:(آ-غوړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دښمنی- اینګ- غُچ- موږ- (۲)بدله- انتقام-

اغوړل:(اَ-غو-ړل)مصدر- غړل- غښتل- تاوول (مزے)- (عامیانه)-

اغوړلے:(اَ-غو-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغوړلی- مؤنث اغوړلې- وګورئ اغوړل-

اغوړن:(اَ-غو-ړن)حاصل مصدر- وګورئ اغوړل-

اغوړنګ:(اَ-غو-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغوړل-

اغوړنه:(اَ-غو-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغوړل-

اغوړونکے:(اَ-غو-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغوړونکی- مؤنث اغوړونکې- وګورئ اغوړل-

آغوز:(آ-غوز)اسم- کنه- کانډیانے- دَ وروُمبیو درېو ورځو پی-

اغوزین:(اَ-غو-زین)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اغزین- (۲- اسم)یو خاص قسم غشے-

اغوستل:(اَ-غوس-تل)مصدر- وګورئ اغستل-

اغوستلے:(اَ-غوس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغوستلی- مؤنث اغوستلې- وګورئ اغستل-

اغوستن:(اَ-غوس-تن)اسم- (۱)دَ اغستلو جامې یا بل کوم څیز- (۲- حاصل مصدر)وګورئ اغستل-

اغوستنګ:(اَ-غوس-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغستل-

اغوستنه:(اَ-غوس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغستل-

اغوستهٔ:(اَ-غوس-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اغستل-

اغوش:(آ-غوش)اسم- واحد- مذکر- غېږ- تخرګ- (م- فارسی)-

اغه:(اَ-غه)ضمیر غائب- واحد- دَ هغه عامیانه شکل-

اغه دغه:(ا-غه-ده-غه)صفت/متعلق فعل- وګورئ هغه دغه-

اغی:(آ-غي)اسم- (۱)رڼا- (۲)خوشحالی- (۳)خوښي-

اغیار:(أغ-یار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٔ غیر جمع چې پښتو کښې واحد استعمالیږی- پردی- ناواقف- (۲)رقیب- دښمن- (عربی)-

اغیاری:(اغ-یا-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ځان غیر یا پردے ګڼنه- (۲)دښمنی- تربګنی- مُخالفت- (فارسی)-

اغیړ:(أ-غیړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بد هضمی- دٔ خیټې خرابی- (۲)ضد- خنړ- کرکه- خواتوري- بغض- کینه- دښمني- اغوړ-

اغیړل:(أ-غي-ړل)مصدر متعدی- (۱)اتیړل- بد هضمه کول- (۲)کرکه کول- خوا تورے کول- وېزاره کول-

اغیړلے:(أ-غي-ړۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغیړلی- مؤنث اغیړلې- وګورئ اغیړل-

اغیړن:(أ-غي-ړن)حاصل مصدر- وګورئ اغیړل

اغیړنګ:(أ-غي-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغیړل

اغیړنه:(أ-غي-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغیړل

اغیړونکے:(أ-غي-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغیړونکی- مؤنث اغیړونکې- وګورئ اغیړل

اغیړېدل:(أ-غي-ړي-دل)مصدر لازم- (۱)بدهضمه کېدل- (۲)وېزاره کېدل- خوا تورے کېدل- کرکه کېدل-

اغیړېدلے:(أ-غي-ړي-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغیړېدلی- مؤنث اغیړېدلې- وګورئ اغیړېدل-

اغیړېدن:(أ-غي-ړي-دن)حاصل مصدر- وګورئ اغیړېدل-

اغیړېدنګ:(أ-غي-ړي-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغیړېدل-

اغیړېدنه:(أ-غي-ړي-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغیړېدل-

اغیړېدونکے:(أ-غي-ړي-دون-کے)اسم- فاعل- واحد- مذکر- جمع اغیړېدونکی- مؤنث اغیړېدونکې- مؤنث اغیړېدونکې- وګورئ اغیړېدل-

اغیړېدۀ:(أ-غي-ړي-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ اغیړېدل-

اغېزژن:(أ-غېز-ژن)اسم صفت- وګورئ اغېزه ناک-

اغېزه:(أ-غي-زه)اسم- واحد- مؤنث- اثر- تاثیر- جمع اغېزې-

اغېزه کونکے:(أ-غي-زه-ک-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- اثر کونکے- تاثیر کونکے-

اغېزه ناک:(أ-غي-زه-ناک)اسم صفت- جمع- اغېزه ناکی- اثر کونکے- تاثیر لرونکے- اغېزژن-

اغېژل:(أ-غي-ژل)مصدر- بوژول- را جمع کول-

اغېژلے:(ا-غي-ژۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اغېژلی- مؤنث اغېژلې- وګورئ اغېژل-

اغېژن:(أ-غي-ژن)حاصل مصدر- وګورئ اغېژل-

اغېژنګ:(أ-غي-ژنګ)حاصل مصدر- وګورئ اغېژل-

اغېژنه:(أ-غي-ژۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اغېژل-

اغېژونکے:(أ-غي-ژون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اغېژونکی- مؤنث اغېژونکې- وګورئ اغېژل-

اغېژۀ:(ا-غي-ژۀ)حاصل مصدر- وګورئ اغېژل-

اف:(أف)حرف- (۱)دٔ افسوس او حسرت کلمه- (۲)دٔ ماشومانو ژبه کښې ګرم-

اف اف:(أف-أف)دٔ زیات افسوس او حسرت کلمه-

افات:(آ-فات)اسم- جمع- مذکر- دٔ آفت جمع- مصیبتونه- بلاګانې- تکلیفونه- مشکلات- (عربی)-

افاده:(ا-فا-ده)اسم- فائده رسونه- فیض رسونه- بیانونه- ادا کونه- ښکاره کونه- څرګندونه- (عربی)-

افادیت:(ا-فا-دی-یت)مصدر- فائده رسونه- مُفید کېدنه- (م- عربی)-

افاغنه:(أ-فا-غ-نه)اسم- جمع- مذکر- دٔ افغان جمع- پښتانۀ- (م- عربی)-

افاق:(أ-فاق)اسم- جمع- مذکر- دٔ أفق جمع- وګورئ افق- (م- عربی)-

افاقه:(أ-فا-قه)اسم- لۀ بې هوشی، رنځ یا دٔ طبیعت لۀ خرابی نه ښۀ کېدنه- مرض کښې کمے راتلنه- (م- عربی)-

افاقی:(أ-فا-قي)اسم صفت- دٔ افاق سره متعلق- عالمي- وسیع- (م- عربی)-

افت:(آ-فت)اسم- واحد- مذکر- (۱)بلا- مصیبت- دٔ خدایٔ قهر مثلاً قحط، بیماری، بې انصافی- (۲)تکړه- لائق (صفت)- (م- عربی)- په دویمه معنی کښې مفقن-

افتاب:(آف-تاب)اسم- واحد- مذکر- نمر- لمر- مېر- نور- نمېر- دٔ نمر سترګه-

افتابی:(آف-تا-بی)اسم صفت- افتاب سره متعلق- (ش- فارسی)-

افتتاح:(اف-ت-تاح)اسم- پرانستنه- شروع کونه- لاس پورې کونه-

افتتاحی:(اف-ت-تا-حی)صفت- افتتاح سره متعلق- دٔ ایډیټر دٔ اخبار دٔ پاره لیکلے شوے مضمون-

افتتاحیه:(اف-ت-تا-حی-یه)اسم- هغه مضمون چې ایډیټر دٔ اخبار دٔ پاره لیکلے وی-

افتخار:(اف-ت-خار)اسم- نازېدنه- وياړنه- فخر کونه- (م- عربی)-

افتخاری:(اف-ت-خا-ری)متعلق فعل/صفت- (۱)اعزازی- (۲)بې بدلې- مفت- بې پیسې- (۳)غیر رسمی (غیریتوب)- افغانستان-

افترا:(اف-ت-را)اسم- تور لګونه- تور پورې کونه- تهمت لګونه- دروغ جوړونه- (م- عربی)-

افتراق:(اف-ت-راق)اسم- بیلونه- بیلتون راوستنه- جدائی راوستنه- (م- عربی)-

افچه:(اف-چه)اسم- واحد- مؤنث- هغه فرضی شکل چې په پټی کښې دٔ مارغانو دٔ ویرولو دٔ پاره جوړ کړے شوے وی- برلک-

افراد:(أف-راد)اسم- جمع- مذکر- (۱)دٔ فرد جمع- وګړی- خلق- (۲)دٔ خنو

ي" (ښی-رل)، ې" (هې-ره-ول)، ی" (پیا-لی)، ے" (تن-دے) تفصیل دٔ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پهٔ خیال کښې دَ "افرا" دېو تلفّظ-

افراط:(اف-راطْ)اسم- تېرې- دَ حده وتنه- ډېر والے- زیات والے- دَ تفریط ضد- (م- عربی)-

افراطی:(اَف-را-طی)اسم صفت- افراط کونکے- دَ حد نه وتونکے- تېرے کونکے- زیاتی کونکے-

افرنګ:(اف-رنګ)اسم- واحد- مذکر- پېرنګے- فېرنګے- یُورپی-

افرین:(اف-فه-رین)کلمه تحسین- شاباش- واوا- کله کله طنزاً هم وئیلے شی- (م- فارسی)-

افزایش:(اف-زا-یش)اسم- ډېر والے- زیات والے- کثرت- (م- فارسی)-

افزون:(اف-زُون)صفت- زیات- ډېر- (م- فارسی)-

افسانوی:(اَف-سا-نَ-وی)اسم صفت- غېر حقیقی- دَ افسانې سره متعلق- (م- فارسی)-

افسانه:(اَف-سا-نه)اسم- واحد- مؤنث- قیصی- دَ حقیقت ضد- ادبی اصطلاح کښې وړه قیصی-

افسانه ګو:(اَف-سا-نه-ګو)اسمِ فاعل/صفت- افسانه ویونکے-

افسانه ګوئی:(اَف-سا-نه-ګو-ئی)اسم- مؤنث- افسانه وئېنه-

افسانه نګار:(اَف-سا-نه-نَ-ګار)اسمِ فاعل/صفت- افسانه لیکونکے-

افسر:(اَف-سَر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مشر- سردار- (۲)تاج- (۲)خول- ټوپل- قرقره- (م- فارسی)-

افسر توب:(اَف-سر-توبْ)اسم- مشر توب-

افسرتیا:(اَف-سَر-تیا)اسم- مشرتیا- (م- عربی افسر- انګریزی آفیسر)-

افسردګی:(اَف-سُر-دَ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- پرېشانی- زبُون حالی- دلګیری- غمژن توب- غمګینی- نولړتیا- (م- فارسی)-

افسرده:(اَف-سُر-ده)اسم صفت- (۱)سوړ- مړاوے- (۲)کرنګ- کنګل- یخ بسته- (۳)غمژن- (م- فارسی)-

افسوز:(اَف-سوزْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)خنکان- (۲)دَ خنګان ظاهرولو کلمه- (افسوس فارسی- تأسف عربی)-

افسوس:(اَف-سوس)اسم- دَ غم، ارمان، حسرت کلمه- (ش- فارسی)-

افسون:(اَف-سُونْ)اسم- (۱)دم- سحر- جادو- منتر- (۲)مکر- حیله-

افسونګر:(اَف-سُون-ګر)اسم صفت- (۱)جادوګر- دم ګر- (۲)حیله باز- جمع افسون ګران- مؤنث افسون ګره-

افشان:(اَف-شانْ)اسم- دَ مُقېش یا ګوټے وړې وړې زرې چې ښځې يُ دَ ښانست د پاره پهٔ تندی لګوی او پهٔ وېښتو يُ دوړوی-

افضل:(اف-ضَل)اسمِ تفضیل/صفت- ډېر غوره- بهتر- ډېر فضیلت لرُونکے- (م- عربی)-

افطار:(اف-طارْ)اسم- روژه ماتونه- دَ روژې ضد-

افطاری:(اَف-طا-ری)اسم- (۱)روژه ماتونه- (۲)دَ روژې ماتولو څیزونه- (م- عربی)-

افعال:(اَف-عالْ)اسم- جمع- مذکر- کارُونه- دَ فعل جمع- (م- عربی)-

افغان:(اَف-غانْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پښتون- جمع افغانان- (۲)دَ افغانستان وُسېدونکے-

افغانی:(اَف-غا-نی)اسم صفت- (۱)دَ افغان سره نسبت لرونکے- (۲- اسم)پښتو ژبه- (۳)دَ افغانستان دَ سکې نوم-

افغانیت:(اَف-غا-نی-یَت)اسم- پښتونولی-

افق:(اُ-فُق)اسم- واحد- مذکر- کناره- غاړه- هغه ځائ چې آسمان او زمکه یو بل سره لګېدلی ښکاری- (م- عربی)-

افقی:(اُ-فُ-قی)اسم صفت- دَ افق سره متعلق- دَ عمُودی ضد-

افک:(ا-فک)اسم- واحد- مذکر- تور- تهمت- (عربی)-

افکار:(اَف-کارْ)اسم- جمع- مذکر- دَ فکر جمع- جاجونه- فکرونه- غور او فکر- (۲)خیالات- (م- عربی)-

اُف کول:(اُف-کَ-وَل)مصدر- افسوس کول-

افګار:(اَف-ګار)صفت- ژوبل- زخمی- مجروح- (م- فارسی)-

افګانه:(اَف-ګا-نه)اسم- هغه بې مودې بچے چې دَ ماده انسان یا حېوان دَ ګېډې نه غُرځیږی- اچوونے- (م- غالباً دَ فارسی افګنده)-

افلاس:(اَف-لاسْ)اسم- مُفلسی- غریبی- خواری- (م- عربی)-

افلاطون:(اَف-لا-طونْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ یونان مشهور حکیم (۴۲۹-۳۴۷ ق م)- لغوی معنٰی ارته سینه لرونکے- (یونانی)-

افلاک:(اَف-لاکْ)اسم- جمع- مذکر- دَ فلک جمع- اسمانونه- ګرځندولے- څرخ- (م- عربی)-

افلت:(اَف-لت)اسم- وُکوری اپلت-

افلتی:(اَف-لَه-تی)اسم- وُکوری اپلتې-

افواج:(اَف-واجْ)اسم- جمع- مذکر- دَ فوج جمع- فوځونه- لښکرې- لښکرُونه-

افواه:(اَف-واهْ)اسم- جمع- دَ فوه جمع- (۱)بې بنیاده خبرې- (۲)انګروزه- انګازه- (۳)واهی- بازاری خبرې- ګپ- جمع افواګانې-

افوه:(اَف-فو)کلمه تعجب- دَ حسرت، تعجب، دَ درد غم او پرېشانی پهٔ وخت لهٔ خلې وتونکې کلمه-

افهام:(اَف-هام)اسم- پوهونه- (م- عربی)-

افیم:(اَ-فیم)اسم- واحد/جمع- مذکر- تریاق- اپیم- افیون- دَ خشخاشو دَ ډوډې دَ پئیو نه حاصلېدونکی نشه اوَر مواد-

افیمی:(اَ-فی-می)اسم صفت- واحد- مذکر- افیم خور- پهٔ افیمو عادت سړے-

اقا:(آ-قا)اسم- واحد- مذکر- اغا- مالک- جمع اقایان/اقاګان- (ش- فارسی)-

اقارب:(اَ-قا-رب)اسم- جمع- مذکر- خپلوان نسکیران- رشته داران- (م- عربی)-

اقامت:(اِ-قا-مت)اسم- واحد- مذکر- استوګه- ټیکاؤ- قیام- مسکن- (۲)دَ اختر او جنازې دَ نمانځهٔ نه بغېر تکبیرونه- (م- عربی)-

اقامه:(ا-قا-مه)اسم- واحد- مؤنث- اقامت- تکبیر- (م- عربی)-

اقاو:(ا-قاو)اسم- واحد- مذکر- پهٔ زمکه دَ سېلاب یا باران ډېرې اُبهٔ- (م- ترکی، فارسی)-

اقبال:(اق-بال)اسم- (۱)خوش نصیبی- ښهٔ بخره- ښهٔ برخه- (۲)اعتراف-

اقبال مند:(اق-بال-مند)اسم- اقبال لرُونکے-

اقبال مندی:(اق-بال-من-دی)اسم- اقبال لرنه-

اقبالی:(اِق-با-لي)اسم صفت- اقبال سره متعلق- دَ جُرم یا گناه اعتراف کونکے-

اقتباس:(اق-ت-باس)اسم- (۱)انتخاب- (۲)رڼا اخیستنه- (۳)لهٔ چا دَ نظم یا نثر عبارت نقل کونه- (م- عربی)-

اقتدار:(اِق-ت-دار)اسم- وس- واک- لاس- قدرت- اختیار- طاقت- (۲)حکومت- (م- عربی)-

اقتدا:(اِق-ت-دا)اسم- وروستو تلنه- مطابعت کونه- مقتدی کېدنه- (م- عربی)-

اقتصاد:(اِق-ت-صاد)اسم- واحد- مذکر- سپما- وتِه- میانه روی- (م- عربی)-

اقتصادی:(اِق-ت-صا-دی)اسم صفت- دَ اقتصاد سره متعلق-

اقتصادیات:(اِق-ت-صا-دی-یات)اسم- جمع- هغه علم چې پهٔ هغې کښې دَ ملک دَ مادی پېداوار او دَ هغې دَ مناسب خرڅ پهٔ باب کښې تعلیم ورکولے شی- علم معاشیات-

اقدار:(اَق-دار)اسم- جمع-مذکر- دَ قدر جمع- (۱)اندازې- معیارونه- (۲)قیمتونه- (م- عربی)-

اقدام:(اِق-دام)اسم- وړاندې تلنه- پښه ایښودنه- (۲)پېل- (۳)ارتکاب- (۴)دلېری- (۵)اراده- قصد- (۶)شروع- جمع اقدامونه- (م- عربی)-

اقدس:(اَق-دَس)اسم تفضیل/صفت- ډېر پاک- نهایت پاک- (م- عربی)-

اقرار:(اِق-رار)اسم- (۱)ونېنه- مننه- پهٔ ژبه ونېنه- (۲)وعده- شرط- (م- عربی)-

اقرار نامه:(اِق-رار-نا-مه)اسم- هغه کاغذ چې پرې معاهده لیکلے شوې وی- (قانون)-

اقرارول:(اِق-را-ر-وَل)مصدر متعدی- پهٔ چا اقبال کول- څوک قایلول-

اقرارولے:(اِق-را-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اقرارولی- مؤنث اقرارولې- وګورئ اقرارول-

اقرارون:(اِق-را-ر-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اقرارول-

اقرارونګ:(اِق-را-ر-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اقرارول-

اقرارونه:(اِق-را-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اقرارول-

اقراروهٔ:(اِق-را-ر-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اقرارول-

اقرارونکے:(اِق-را-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اقرارونکی- مؤنث اقرارونکې- وګورئ اقرارول-

اقراری:(اِق-را-ری)اسم صفت- اقبالی- اقرار کونکے-

اقرارېدل:(اِق-را-رې-دَل)مصدر لازم- قائلېدل- اعتراف کول- منل-

اقرارېدلے:(اِق-را-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اقرارېدلی- مؤنث اقرارېدلې- وګورئ اقرارېدل-

اقرارېدن:(اِق-را-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اقرارېدل-

اقرارېدنګ:(اِق-را-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اقرارېدل-

اقرارېدنه:(اِق-را-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اقرارېدل-

اقرارېدونکے:(اِق-را-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اقرارېدونکی- مؤنث اقرارېدونکې- وګورئ اقرارېدل-

اقرارېدهٔ:(اِق-را-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اقرارېدل-

اقرب:(اَق-رَب)اسم- جمع- مذکر- (۱)خپل- خپل مېن- (۲- صفت)خوار- عاجز- (م- عربی)-

اقربا:(اَق-ره-با)اسم- جمع- مذکر- خپلوان- رشته دار- (م- عربی)-

اقساط:(اَق-ساط)اسم- جمع- مذکر- دَ قسط جمع- ټکړې- حصّې- کشتونه-

اقسام:(اَق-سام)اسم- جمع- مذکر- دَ قسم جمع- قسمُونه-

اقصیٰ:(اَق-صا)اسم تفضیل/صفت- ډېر لرې- (م- عربی)-

اقل:(اَ-قَل)اسم تفضیل/صفت- لږ- ډېر لږ- (م- عربی)-

اقلاً:(اَ-قَل-لَن)متعلق فعل- دَ اقل سره منسوب- پهٔ لږ ډول- (م- عربی)-

اقلیت:(اَق-لی-یَت)اسم- کمے- لږ والے- (م- عربی)-

اقلیدس:(اُق-لی-دَس)اسم- دَ جیومېټری علم- دَ ریاضی هغه هندسه چې دَ خپل موجد پهٔ نوم مشهوره ده- (م- اقلی- یونانی- کُنجی- دس- ور- هندسه)-

اقلیم:(اَق-لیم)اسم- جمع- مذکر- ملک- ولایت- دَ زمکې پینځو حصّو کښې هر یو ته اقلیم وائی- جمع الجمع اقالیم- (م- عربی)-

اقنوم:(اَق-نوم)اسم- دَ هر څیز اصل- بُنیاد-

اقوال:(اَق-وال)اسم- جمع- مذکر- دَ قول جمع- خبرې- مقولې- نصیحتونه- (م- عربی)-

اقوام:(اَق-وام)اسم- جمع- مذکر- دَ قوم جمع- قامونه- فرقې- ګروهونه-

اک:(آک)اسم- واحد- مذکر- (۱)نازرین- آفت- مصیبت- (۲)عیب- نُقص- (م- فارسی)- دَ سپلمی وُنه- (هندی)-

اکا:(آ-کا)اسم- واحد- مذکر- (۱)تره‌ٔ یا مشر ورور ته دَ عزت او احترام کلمه-

اکابر:(اَ-کا-بر)اسم- جمع- مذکر- غټان- مشران- دَ اکبر جمع- (م- عربی)-

اکابکا:(اَ-کا-ب-کا)اسم- واحد- مذکر-باباټا چیندخ- کابلے چیندخ- پړوبا- ډېډو-

اکار:(آ-کار)اسم- کړهٔ وړهٔ- اوند غوند-شکل و صورت- وګورئ آکر-

اکار:(اَ-کار)اسم- واحد- مذکر- دهقان- بزګر- کسان-

اکاړ:(اَ-کاړ)اسم صفت- (۱)ظالم- دښمن- بې رحمه- (۲)وُچ- خشکی- تریخ سړے- (۳)وګورئ اکار-

اکاړه:(اَ-کا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د پهلوانانو دَ کُشتی دَ پاره ځایٔ- دَ کبډی مېدان- دَ سپو جنګولو ځایٔ- د پرخونو ځایٔ- (م- هندی)-

اکاړی:(اَ-کا-ړی)اسم- واحد- مؤنث- دهقانی- بزګری- زمیداری-

اکاړی:(اَ-کا-ړی)اسم- (۱)ظلم- بې رحمی- دښمنی- (۲)وُچ توب- خوشکه- تریخ والے-

اکاړی توب:(اَ-کا-ړی-توب)اسم- سختی- اړی- اړی ماری-

اکاله:(ا-کا-له)اسم- دَ زمکې یو خل قلبه کونه- (م- اک- یو- هل- قلبه- غالباً)-

اکب:(اَ-کُب)اسم صفت- مذکر- (۱)قدرت- زور- طاقت- (۲)لوئی- بزرګی- عظمت-

اکبار:(اک-بار)اسم- واحد- مذکر- یو تروې دانې لرُونکے بوټے او دَ هغې دانې چې خوړلے کیږی-

اکبر:(اک-بر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ډېر لوئې- (۲)دَ مغل بادشاه جلال الدین لقب- (م- عربی)-

اکبری:(اک-به-ری)اسم- اکبر سره متعلق-

اکبری سُونت:(اک-به-ری-سُو-نت)اسم- وُکوری پېغمبری سُونت-

اکبری:(اک-بَ-ری)اسم- جمع- مؤنث- (۱)خلوبی- مشهور خواږهٔ- (۲)دَ اکبر بادشاه اشرفی- مُهر-

اک بک:(اک-بک)اسم صفت- حېران- اک پک- (م- هندی مکابکّا)-

اک پک:(اک-پک)اسم صفت- اک دک- هک دک- حېران و پریشان- (م- وُکوری اک بک)-

اکتساب:(اک-ت-سابّ)اسم- زده کونه- کسب کونه- ګټنه- لاس ته راوړنه- خواری کونه- (م- عربی)-

اکتسابی:(اک-ت-سا-بي)صفت- ګټلے شوے- زده کړے شوے-

اکتفا:(اک-ت-فا)اسم- کافی کېدنه- بَس- بسنه- بس والے- کافی- (م- عربی)-

اکتوبر:(اک-تُو-بر)اسم- واحد- مذکر- دَ انګریزی کال لسمه میاشت چې همېشه دَ یودېرشو ورځو وی- (م- انګریزی)-

اکثر:(اک-ثر)اسمِ تفضیل/صفت- زښت ډېر-

اکثریت:(اک-ثَ-ری-یت)اسم- دَ اکثر سره متعلق- دَ شمېر پهٔ لحاظ زیاتوالے- ګڼ والے- (م- عربی)-

اکر:(اَ-کَر)اسم- (۱)شکل شباهت (اکر بکر یو ځایٔ راځی)- (۲)سرګرځی- سرګرځېدنه-

اکرابه:(اک-را-به)اسم صفت- واحد- مؤنث- سپېرهٔ- کمینه، فضول او بې فائدې ښځه- ټینکه- نامبارکه پواړه- سپېرغتی-

اکرام:(اک-رامّ)اسم- واحد- مذکر- (۱)انعام- (۲)عزت ورکونه- (۳)مېلمستیا ورکونه- (۴)احترام- (م- عربی)-

اکراه:(اک-راهّ)اسم- (۱)نفرت- کرکه- ناخوښی- (۲)جبر- زور- (م- عربی)-

اکرب:(اک-رَب)اسم صفت- بې وسه- عاجز- کریاب- بې کس- مجبور- مؤنث اکربه- (م- عربی اکرب- ډېر کرب کښې)-

اکربتیا:(اک-رَب-تّیا)اسم- واحد- مؤنث- بې وسی- عاجزی- لاچاری- مسکینی-

اکربکر:(اَ-کَر-بَ-کَر)اسم- شکل شباهت- کړهٔ وړهٔ- دَ مخ کاسه- خدوخال- وُکوری اکر-

اکربه:(اک-رَ-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اکرابه- (۲)دَ اکرب مؤنث- (۳)دَ خاوند دَ پاره سپېره ښځه- (ش- عقرب- لړم- عربی)-

اکرکره:(اَ-کَر-ک-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ تور رنګ او تېز بویٔ لرونکے دَ یو بوټی بېخ چې مزاج یٔ ګرم او خُشک وی او پهٔ یونانی دارُو کښې پکارېږی- اوځکرے- (م- عاقرقرحا)- نباتاتی نُوم دَ اناسائیکلس پیریترم یو قسم-

اکرم:(اک-رَم)اسمِ تفضیل/صفت- ډېر سخی- (م- عربی)-

اکرمه ګټه:(اک-ره-مه-ګ-ته)اسم- وزیره ګټه- دَ مینځنی ګټې او کچنې ګټې تر مینځه ګټه-

اکر ورانېدل:(اَ-کَر-ورا-نې-دَل)مصدر- غصه راتلل-

اکره:(آ-کَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- سپینه بزه- جمع اکرې-

اکره:(اک-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)شنډه- (۲)وُچه- (ښځه، بزه، غوا)-

اکره:(اک-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځایٔ چې دَ اُور لمبې ترې خیژی-

اکره:(اک-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- ډېر ګرم-

اکره:(اک-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اثار قدیمه- (۲)مقام-

اکرې:(اک-رې)اسم- دَ ښار کنډرې- کنډوالې- کنډولې- خرکنې- خرابه- ویرانی-

اکړ:(ا-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نا اُمیده- مایُوس- (۲)شنډ- بې حاصل- بې اولاده- یوازې- مؤنث اکړه- جمع/مؤنث اکړې-

اکړې بکړې:(اک-ړې-بک-ړې)اسم- جمع- مؤنث- دَ ماشومانو یو قسم دانې- لاکړه کاکړه-

اکړې پاکړې:(اک-ړې-پاک-ړې)اسم- دَ جوارو ګنجے وړے- ګنجے بنجے-

اکسیجن:(اک-سی-جن)اسم- واحد- مذکر- بې رنګه، بې خونده او بې بویه هغه ګېس چې دَ ژوند دَ پاره ضروری دے او یو خاصیت یٔ دا هم دے چې دَ اُور بلولو کښې مدد کوی- (م- انګریزی)-

اکسیر:(اک-سیرّ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کیمیا- هغه دارو چې دَ یو مرض حکیمی علاج وی- (م- عربی)- (۲)عرق-

اکسیلېټر:(اک-سی-لے-ټر)اسم- واحد- مذکر- دَ موټرونو بسونو وغېره یو پُرزه چې هغې سره پهٔ پښه دَ زور ورکولو پهٔ نتیجه کښې رفتار تیزېږی- (م- انګریزی)-

اکش بکش:(اُ-کُش-بُ-کش)اسم- (۱)دَ جنګ دَ پاره دَ خلقو نه دَ ځان خلاصولو کوشش- (۲)دَ څو کسو تر مینځه سُوک څپېړه-

"زېر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

اککر :(اَ-کَ-کَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اکرکره-

اکل:(ا-کل)اسم فاعل- واحد- مذکر- (۱)خوړونکے- (۲)دَ دانې يو قسم چې دَ بدن غوښې او هډوکی ته پريوځی-

اکلکره:(اَ-کل-کَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اکرکره-

اکله:(اَ-کَ-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- بخيله ښځه- سپېره او شومه ښځه- پواړه- اکربه-

اکمال:(اک-مال)اسم تفضيل/صفت- پوره کونه- بشپړونه-

اکمل:(اک-مل)اسم تفضيل/صفت- ډېر بشپړ- ښۀ پوره- ډېر کامل- (م- عربی)-

اکناف:(اک-ناف)اسم- جمع- مذکر- دَ کنف جمع- څنډې- غاړې- طرفونه- (م- عربی)-

اکوبکو:(اک-کو-بک-کو)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)دَ يوې مرغی نُوم- (۲)دَ يو لوبې نُوم- (۳)اوتې بوتې- (۴)بکواس-

اکوړ:(اَ-کوړ)اسم- واحد- مذکر- غوز- اغز- کروټ- ميټک- چرمغز-

اکوړی:(اَ-کو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- سره بوزينه- سره رنګ شوی يوه باريکه څرمن-

اکوک:(اَ-کوک)اسم- جمع- مذکر- دَ ونې غوره مېوه- دَ چاڼ مېوه-

اکونا:(ا-کو-نا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کندو- (۲)پاک- بې ملاوټه- (پۀ دېو معنو کښې صفت- م- هندی)-

اکوڼے:(اَ-کو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- دَ ځاروی بچے- دَ ځناور بچے- سکوړے- سخے- سخوټے-

اکه پکه:(اَ-که-پَ-که)اسم صفت- وګورئ اک پک-

اکين:(اَ-کين)اسم- وګورئ يکين-

اکيڼے:(اَ-کی-ڼے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مشک هغه تسمه چې دَ اُبو راوړو پۀ وخت يې سَرته اچوی- (۲)دَ جولاګانو ليندی چې تنسته کښې يې پکاروی-

اکی:(ا-کی)اسم- واحد- مؤنث- مشرې خور ته دَ خطاب کلمه-

اکے:(ا-کے)اسم- واحد- مذکر-پۀ چيندرو کښې وړومبے کور-

اګ:(اګ)اسم- واحد- مذکر- پوګ-

اګا:(اَ-ګا)اسم- واحد- مذکر- دَ اَغا دَ کلمې يو شکل چې ماشومان يې پلار ته وائی-

اګابګا:(اَ-ګا-بَ-ګا)اسم- واحد- مذکر- دَ ملکانو دَ يوې لوبې نوم- اکوبکو-

اګاړ:(اَ-ګاړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اګار-

اګاړی:(اَ-ګا-ړی)اسم- واحد- مذکر- هغه بياسته چې اُس يا بل کوم ځناور پرې لۀ وړومبی پښې نه تړلے شی- دَ پچواړی ضد-

اګاؤ:(اَ-ګا-وو)متعلق فعل- وړاندې- مخکښې- وړومبے- اګامو- (ش- هندی)-

اګاونے:(اَ-ګا-ؤو-نے)صفت- دَ اګاؤ سره متعلق-

اګاه:(اَ-ګاه)اسم صفت- خبر- واقف- پوه- خبردار- (م- فارسی)-

اګامو:(اَ-ګا-مُو)متعلق فعل- وګورئ اګاؤ-

اګائی:(اَ-ګا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- اګاهی- واقفيت- خبرداری- هوښياری- و ګوری اګاهی- (ش- فارسی)-

اګاهی:(اَ-ګا-هی)اسم- خبرداری- واقفتيا- پوهه- دَ يوې واقعې پۀ حقله لۀ مخکښې نه پۀ مافوق الفطرت طريقه خبرېدنه-

اګاهی ورکول:(اَ-ګا-هی-ور-کَ-ول)مصدر متعدی- خبرول- (م- اګاه فارسی)-

اګاهی ورکېدل:(ا-ګا-هی-ور-کې-دَل)مصدر لازم- خبرېدل- پوهېدل- واقفېدل-

اګبوټ:(اګ-بوټ)اسم- واحد- مذکر- انګبوټ- انګوټ- دَ اُبو وړوکے جهاز- (م- انګريزی)-

اګدر:(اګ-دَر)اسم- واحد- مذکر- اژدر- اجګر- اژدها- ډېر زمرژن مار- (ش- فارسی اژدر)-

اګدور:(اګ-دور)اسم صفت- بې پروا- (م- هندی)-

اګر:(اَ-ګر)اسم- واحد- مذکر- دَ انسانی بدن دَ شا هغه حصّه چې بهر ته را وتې وی- کُناټے-

اګر:(اَ-ګر)حرف شرط- کۀ- کۀ چرې- (ش- فارسی)-

اګر:(اَ-ګر)اسم- (۱)يو بُوټے او دَ هغې لرګے چې پۀ سوزېدو خوشبوئی ورکوی- نباتاتی نوم ايمانرس ايکالوچا- (۲- صفت)قيمتی او ناياب څيز- انجروت-

اګر:(ا-ګر)اسم- واحد- مذکر- خشاوزه- خساوزه- سخاوژه- خساموړه- يو دارُو چې دَ نس دَ درد دَ پاره خوړلے شی- نباتاتی نوم- اکورس کيلامس او ېږے ټس-

اګر:(اَ-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مرئے- غلام- بنده- (۲)رذيل- کمينه- مؤنث اګره- جمع/مؤنث اګرانې-

اګرانی:(اګ-را-نی)اسم- دَ قرض سودا دَ ورکولو نه پس دَ هغې دَ قيمت راغنډولو کار- (م- اګاهی هندی)-

اګربتی:(اَ-ګر-به-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- يو خوشبودار ېکے چې دَ خوشبو دَ پاره سوزلے شی- اګر-

اګربګر:(اَ-ګر-بَ-ګر)اسم- شور شغب-

اګرتيا:(اَ-ګر-تيا)اسم- (۱)شنډتوب- شنډتيا- (۲)دَ ښځې يا ونې دَ نۀ بارداره کېدو حالت-

اګرچه:(اَ-ګر-چۀ)حرف- مرځوکه- سره ددې چې- اګرکۀ-

اګره:(اګ-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ وريژو، مستو يا شُملو بې مزې پخګړے- (م- هندی)-

اګره:(اګ-ره)اسم- وګورئ ګره-

اګره-يګره:(اګ-ره)(يګ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اګره-

اګری نګری:(اګ-ری-نګ-ری)صفت- اړے ګړے- غوبل- هغه حالات چې دَ قانون احترام پکښې نه وی- (م- انی نګری پنجابی- ړوند وطن)-

اګړم بګړم:(اګ-ړم-بګ-ړم)اسم صفت- (۱)بېکاره، خشې عبث خبرې- (۲)ګډ وډ- (۳)عبث- بې کاره څيزونه- (م- هندی)-

ی: (ځی-ژل)، ې:(مې-ره-ؤل)، ئ:(پيا-لی)، ے:(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

اکست:(اَ-کَستّ)اسم- واحد- مذکر- د عیسوي کال اتمه میاشت-

اکل:(ا-کل)اسم- واحد- مذکر- (۱)خاورګاړے- هغه خاۍ چې کلالان ترې نه خاوره اوړي- (۲)ابراب- (۲)خندق-

اکن:(اَ-کن)اسم- واحد- مذکر- یوه وړوکې خوږخنه مرغۍ چې خوش آوازه وي- خیروا- سپیرکونټکه- سپیرکونږه- جل- خراړه- سپیرګنده- خراکه- (۲)برړا- جوغنده- کزلاخ- جمع اکنونه-

اکن:(ا-کن)اسم صفت- واحد- مذکر- بې عقله- کم عقله- نادان- لواړ- احمق-

اکن بوټ:(اَ-کن-بوټ)اسم- واحد- مذکر- انکوټ- د اُبو جهاز- وګورئ اکبوټ-

اکو:(اَ-کو)اسم- واحد- مؤنث- پپو- ببو- ترور- ماسي- د پلار یا د مور خور-

اکواړي:(اَګ-وا-ړي)اسم- واحد جمع- مؤنث- د اُس یا بل کوم ځاروي یا خناور د مخکښې پښې ترلو د پاره مزے یا پړے- اګاړي- (هندي)-

اکوړي:(ا-کو-ړي)اسم- واحد جمع- مؤنث- اګاړي- وګورئ اکواړي-

اکه:(ا-که)اسم صفت- خبردار- واقف- وګورئ اګاه-(م- فارسي)-

اکه:(ا-که)اسم- واړ- خل- جمع اکې-

اکیربکیر:(اَ-کیر-ب-کیر)اسم صفت- (۱)اوتر حیران دریان- حیز حیران- مایوسه- بې درکه- (۲)ډېر زیات مجوم-

اکیچ:(اَ-کیچ)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه نوکر چې د ورځې چا سره کار کوي او د شپې خپل کور ته ځي-

اکیر:(اَ-کیر)اسم- واحد- مذکر- (۱)اوړ- (۲)سرو ټکې-

اکیړے:(اَ-کې-ړے)اسم- واحد- مذکر- د شملو د مشک د خلې د ترلو مزے یا پړے-

اکیل:(اَ-کې-یل)مصدر- په چا پوري ملنډې کول- ټوقې کول- (۲)د بوري خلهٔ ترل-

اکیلے:(اَ-کې-یهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اکیلي- مؤنث اکیلې- وګورئ اکیل-

اکین:(اَ-کې-ین)حاصل مصدر- وګورئ اکیل

اکینګ:(اَ-کې-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ اکیل

اکینه:(ا-کې-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اکیل

اکیونکے:(اَ-کې-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اکیونکي- مؤنث اکیونکې- وګورئ اکیل

اکیه:(اَ-کې-یهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اکیل

اکۍ:(اَ-کۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- ها- اویه- هویه- هکۍ- انکۍ- (م- د ها اسم تصغیر)-

ال:(آ-ل)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)زوۍ لور- اولاد- ټبر- خاندان- (م- عربي)-

ال:(آل)اسم- (۱)زوزاد- زهوزاد- (۲)د پیریانو ابهٔ- (۳)سور رنګ- (م- ترکي)-

ال:(آل)اسم- پیړے- باګو- بکلولې- روے- (م- عربي)-

الا:(اَ-لا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پهٔ جمع سره د الله نوم اخستنه (الا الا کول)- (۲)د خوشحالۍ پهٔ موقع یوه نعره (الا وکښل)- (۳)تېزه منډه- زغاښت- پهٔ یو سا تلنه- (۴)حمله (الا کول)-

الا الا:(اَ-لا-اَ-لا)اسم صفت- مذکر- (۱)تالاترغه- چور ماچور- (۲)ناري سورې- چغې- د خوشحالۍ او د جوش ناري- د پوليي یا د اشر پهٔ وخت کښې د جوش زیاتولو ناري- (۲)کته نیونه- پره- (۴)د سپکاوي چغې-

الا بلا:(اَ-لا-بَ-لا)اسم- (۱)بېکاره او بې ښې ځیزونه- کډګاډېره ځیزونه- (۲)درد- کړاګ- مصیبت- (۲)ماري داړې- وراني ویجاړي- روا ناروا-

الات:(آ-لاتّ)اسم- جمع- مذکر- د الت جمع- هغو کالو او سامان ته وئیلے شي چې د ځنو کارونو پهٔ کولو کښې استعمالیږي- مشینونه- (م- عربي)-

الاج:(اَ-لاج)اسم صفت- واحد- مذکر- د مالوچو وهونکے- ډانډټې- نداف- حلاج- (م- حلاّج عربي)-

الاجي:(ا-لا-جي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه اله چې پوندانه پرې لهٔ مالوچو نه بېلولے شي- (۲)د کنو د کاڼي د اسپنې مشیني حصه چې پهٔ یو فریم دربو لوټېرو او د مینځ پهٔ تیر مشتمله وي- (۲)د اینځر یوه کونګه-

الاجیکګ:(الا-جي-کګ)اسم- واحد- مذکر- د یو ښکلي مارغهٔ نوم- کنجره-

الاچه:(اَ-لا-چه)اسم- واحد- مذکر- یو قسم کرښې کرښې پټې پټې ریښمینه کپړه- (هندي)-

الاچي:(اَ-لا-چي)اسم- جمع- مذکر-وګورئ لاچي-

الاداد:(ا-لا-دادّ)اسم- واحد- مذکر- یوه لوبه چې ملکان پکښې یو بل نه پټېږي، زغلي او ډبونه سره ورکوي- الي شرنګ ډبلي- الي ډبلي- ټپ ټپانے- ټپ ټپانے-

الاړو:(اَ-لا-ړو)اسم- واحد- مذکر- د ترکاڼانو یو قسم برمه چې لهٔ الاړونے ځنې لوه وړه وي-

الاړوبه:(ا-لا-ړو-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هله ګوله- اړے ګړے- هنګامه- درز دروز- الغاؤ تلغاؤ- (۲)پره ورخ- غاو غړو-

الاړونے:(ا-لا-ړو-نے)اسم- واحد- مذکر- د ترکاڼانو لویه برمه-

الاډېر:(اَ-لا-ډېر)اسم صفت- ډېر زیات- مچ میري- بې حده زیات-

ال ارغهٔ:(ال-ار-غهٔ)اسم- واحد- مذکر- یو د وړو پښو خړ رنګے مارغهٔ-

الارم:(ا-لا-رم)اسم- واحد- مذکر- ټلۍ- د ټائم پیس ټلۍ- (م- انګریزي- الارم)-

الاستي:(ا-لاس-تي)اسم صفت- (۱)غائب- پټ- (۲)ناګهانه- ناڅاپي- سمدستي-

الاشه:(ا-لا-شه)اسم- واحد- مؤنث- جامه- خامه- برغښے- کرغښے- کنجلے- جمع الاشې-

زبر "(غ-یهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

الاغ:(اَ-لاغ)اسم صفت- (۱)کرکے- مردار مهږے- خر- (۲)خرے- قاصد- (۳)اولو- باردار- (۴)خره- (م- ترکی)-

الاک ډلاک:(ا-لاک-ډ-لاک)صفت- حیران دریان- هک بک- مایوسه- هک دک-

الاکلنګ:(ا-لا-ک-لنګ)اسم- واحد- مذکر- شاد بنډک- غنجالے رنګ- ډ ملکانو یوه لوبه-

الال:(اَ-لال)اسم صفت- و ګوری حلال-

الالول:(اَ-لا-ل-ول)مصدر متعدی- وګورئ حلالول-

الالونے:(اَ-لا-ل-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حلالونے-

الالېدل:(اَ-لا-لې-دل)مصدر لازم- وګورئ حلالېدل-

الام:(آ-لام)اسم- جمع- مذکر- (۱)ډ الم جمع- تکلیفونه- غمونه- پرېشانی- مصیبتونه- (۲)عام طور سره ډ کلام نه مخکښې ډ "الام کلام" په شکل استعمالیږی-

الام کلام:(اَ-لام-ک-لام)اسم- مذکر- خبرې اترې- ګپ شپ- پېغام- خواب (مرکّب)-

الاورتې:(اَ-لا-ور-تې)اسم- جمع- مؤنث- بې فائدې وېنا- اکوبکو- چیتیاټ (افغانستان)-

الاوې وهل:(اَ-لا-وې-و-هل)اصطلاح- په یو مخ منډې وهل- په مخه خغلېدل-

الهٔ:(ا-لاه)اسم- واحد- مذکر- ډ قوت خاوند- معبود-

الهو:(اَ-لا-هو)کلمه- ماشوم ته ډ اودهٔ کولو ډ پاره سندره- (الله هو ونیل/کول مصدرونه)-

الهی:(ا-لا-هی)(۱)الله ته ډ ندا کلمه- اے زما خدایه- (۲)الهٔ سره منسوب-

الهیات:(ا-لا-هی-یات)اسم- ډ خدایٔ پاک په باره کښې علم او فلسفه-

البت:(اَل-بت)حرف- وګورئ البته-

البته:(اَل-ب-ته)حرف- (۱)ضرور- بې شکه- (۲)مګر- لېکن- ډېر ښهٔ- (۳)او- (عربی)-

البشاکه:(اَل-ب-شا-که)اسم- واحد- مؤنث- نمونه- نښه- معمولی- اثر- جمع البشاکی-

البلے:(اَل-ب-لے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- زاری کوونکے- عاجزی کوونکے- خاکسار- الون بلون کوونکے- جمع البلی-

البند:(اَل-بند)اسم- واحد- مذکر- ډ اړی ډ موسم ورشو- جمع البندونه-

البنګ:(اَل-بنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- ګونګے- خاموش- چُپ چاپ- جمع البنګیان- واحد/مؤنث البنګه- جمع/مؤنث البنګې-

البیس:(ال-بیس)اسم- واحد- مذکر- چڼ- تکے- خبره- ژغ- غږ- ګفت- وش- کش- جمع البیسونه-

الپته:(اَل-پ-ته)اسم صفت- تلولی- وارخطا- پرېشان- متلون- اوتزکوتر- تنګ تربت-

الپی الا:(اَل-پی-ا-لا)اسم صفت- ډېر خوار- خوار پړک- نېستمن- بې وسه- ډ پولی تګ ته ناست- بې شتو- (م- الف- الله)-

الت:(اَ-لت)اسم- واحد- مذکر- (۱)وزار- وسله- کالے- (۲)ډ نر ډ نرتوب بهرنے اندام- ذکر- جمع الات- دوېمه معنی کښې التونه- (عربی)-

التباس:(ال-ت-باس)اسم- ډ یو شان والی لهٔ کبله په شک کښې پرېوتنه- (م- عربی)-

التجا:(ال-ت-جا)اسم- منت- زاری- خواست-

التزام:(ال-ت-زام)اسم- (۱)په غاړه اخستنه- (۲)په ځان لازمونه- (۳)ډ څهٔ کار ډ کولو یا نهٔ کولو وعده- (م- عربی)-

التفات:(ال-ت-فات)اسم- پام- توجه- مهربانی- رغبت- (م- عربی)-

التماس:(ال-ت-ماس)اسم- غښتنه- خواست- (م- عربی)-

التوا:(ال-ت-وا)اسم- نغښتنه- ځنډونه- بلې موقعې ته پرېښونه- ملتوی کونه- (عربی)-

التہ:(اَل-تہ)اسم صفت- (۱)اپوټه- پړمخې- په بل مخ- اړولے- برخلاف- په ترغ- په څټ- کېن- کینه- کس- ډ ښی ضد- ډ نېغ ضد-

التی:(اَل-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- قے- کوزکتنه په- ستنه کونه- لهٔ مخه کونه- ګرډان- غرخونه- بکی- باکی- چال باسل- ګرخون- چال- باقی- جمع التیانې-

الچوغ:(اَ-ل-چوغ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وُله- خروله- ډ سېلکس ډ نباتاتی کروپ هر یو بوټے- (۲)تاوبدنه- ټیټبدنه- شاید ډ ولې ډ خاصیت په وجه- (م- ترکی- الچوق- الچخت)- الچوق- نباتاتی نوم سېلېکس ټټرا سپرما (SALIX TETRA SPERMA)-

الچه:(اَ-لهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ الاچه- جمع الچی-

الخپک:(ال-خ-پک)اسم صفت- خُپک- زرغ- نری او لږه واوره چې ډ زمکې په مخ پرته وی-

الخی:(ال-خی)اسم صفت- سست- ناراسته- لټ- ناړامه- بېځنځه-

الحاد:(ال-حاد)اسم- کږېدنه- دهریه کېدنه- ملحد کېدنه- لهٔ دینه اوړېدنه- (م- عربی)-

الحاق:(ال-حاق)اسم- جختېیدنه- شاملېدنه- شریکېدنه- (م- عربی)-

الحاقول:(ال-حا-قه-ول)مصدر متعدی- پېوست کول- شاملول- شریکول- جختول- (م- عربی)-

الحاقولے:(ال-حا-قه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع الحاقولی- مؤنث الحاقولې- وګورئ الحاقول-

الحاقون:(ال-حا-قه-ون)حاصل مصدر- وګورئ الحاقول-

الحاقونګ:(ال-حا-قه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ الحاقول-

الحاقونه:(ال-حا-قه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ الحاقول-

الحاقونکے:(ال-حا-قه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع الحاقونکی- مؤنث الحاقونکې- وګورئ الحاقول-

الحاقوهٔ:(ال-حا-قه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ الحاقول-

الحاقی:(ال-حا-قی)اسم صفت- ډ الحاق سره متعلق- لهٔ ځانه جوړه شوې-

لهٔ خانه پیوست شوې-

الحاقیه:(ال-حا-قي-یه)اسم- پیوستون-

الحمد:(اَل-حَم-دُ)اسم- سُورهٔ فاتحه- دَ قرآن شریف وړومبے سُورة- (م- الحمدُ لله- ټولې ستائنې دَ الله دَ پاره)-

الخ:(اَ-لخ)مُخفّف- دَ الی اخره مخفّف- یعنې دَدې تر آخر پورې- دا توریے دَ یوې جملې دَ یو څو لفظونو نه پس لیکلے شی او مطلب ئې دا وی چې دغه جُمله دې تر آخره ولُستے شي-

الدُنګ:(ال-دُنګ)صفت- بې غېرته- بې ننې- بې توښې-

ال دوال:(اَل-دو-آل)متعلق فعل- دواله- دوه اَله- زمکه پهٔ دوېم ځل اړونه-

ال رسول:(آ-لِ-ره-سول)اسم- دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم اولاد- سېدان- (م- عربی، فارسی)-

الزام:(اِل-زام)اسم- واحد- مذکر- (۱)تهمت لګونه- تور لګونه- (۲)ملامتیا- پړه-

الست:(اَ-لَست)اسم- دُ میثاق دَ ورځې وعده "اَلستُ بِرَبّکُم" ایا زهٔ ستاسو رب نهٔ یم-

الستی:(اَ-لَس-تي)اسم صفت- (۱)غائبانه- قدرتی- (۲)ناڅاپی- بې طمعې- ناګهانه-

السلام علیکم:(اس-سه-لا-مو-ع-لي-کُم)جُمله- پهٔ تا سو دې سلامتیا وی- دَ عربی ژبې دَ سلام کلمه-

السی:(اَل-سي)اسم- واحد- مؤنث- یو بوټے او دَ هغې تخم چې دارُو کښې پکاریږی- نباتاتی نوم لینم یوسی ټے ټسی مم- (م- سنسکرت، هندی)-

الش:(اَ-لش)اسم- واحد- مذکر- بدل- عوض-

الشع:(اَل-شَع)اسم صفت- هغه سړے چې پهٔ واضحه ډول الفاظ نهٔ شی ادا کولے-

الشول:(اَ-ل-ښ-وَل)مصدر متعدی- وګورئ الیښول-

الښېدل:(اَ-ل-ښې-دَل)مصدر لازم- وګورئ الیښېدل-

الښېدلے:(اَ-ل-ښې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع الښېدلی- مؤنث الښېدلې- وګورئ الیښېدل-

الښېدن:(اَ-ل-ښې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ الیښېدل-

الښېدنګ:(اَ-ل-ښې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ الیښېدل-

الښېدنه:(اَ-ل-ښې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ الیښېدل-

الښېدونکے:(اَ-ل-ښې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع الښېدونکی- مؤنث الښېدونکې- وګورئ الښېدل-

الښېدهٔ:(اَ-ل-ښې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ الیښېدل-

الطاف:(اَل-طاف)اسم- جمع- مذکر- دَ لُطف جمع- مهربانی- (م- عربی)-

الغاء:(ال-غاء)اسم- دَ بلغا او تلغاؤ سرهٔ په ترکیبی ډول شور ما شور- شور- زوږ او کرېږ-

الغار:(اَل-غار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ یلغار-

الغاسه:(اَل-غا-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ روټی یو ټوک- (۲)وار خطا- ویرېدلې- خفه- زهېره- (دې معنو کښې صفت)-

الغاؤ تلغاؤ:(اَل-غاؤ-تَل-غاؤ)اسم صفت- اړے ګړے- شور و شر- بغاوت- چغې چغارې-

الغتان:(اَل-غ-تان)اسم صفت- واحد- مذکر- ناړامه- اړک- ضدی-

الغرض:(اَل-غَ-رَض)اسم- غرض داچې- (م- عربی)-

الغو:(اَل-غو)اسم صفت- بې اطمینانی- شور و شر-

الغو تلغو:(اَل-غو-تَل-غو)اسم صفت- وګورئ الغاؤ تلغاؤ-

الغوزا:(اَل-غو-زا)اسم- واحد- مؤنث- یوه غبرګه شپېلۍ چې دَ سندھ دَ اولسی موسیقی آله ده-

الغوش:(اَل-غوش)اسم صفت- مذکر- وګورئ ارغوش-

الغه:(اَل-غه)اسم- واحد- مؤنث- خلقه- جمع الغې- (عامیانه)-

الغه کول:(اَل-غه-کَ-وَل)مصدر- څوک پهٔ چل ول کېرول- غرض پرې کول- په تکۍ کېرول-

الغیاث:(اَل-غه-یاث)حرف ندا- دَ امداد دَ پاره دَ راغښتلو آواز- اصلی معنٰی امداد-

الف:(اَ-لف)اسم- دَ ابجدو وړومبے توریے- (م- عربی)-

الفاذ:(اَل-فاذ)اسم- هغه چنچې یا پانې چې دَ دروازو کړکیو او روشندانونو وغېره دَ جوړونو دَ مضبوطولو دَ پاره دَ دېوال او لرګی تر مینځه ټک وهلے شي- (م- انګریزی- فولډفاسټ- فولډ ونیسه- فاسټ کلک)-

الفاظ:(اَل-فاظ)اسم- جمع- مذکر- دَ لفظ جمع- ټکی- توری- خبرې اترې- ګنتګو- (م- عربی)-

الف با:(اَ-لف-با)اسم- پټی- حروف تهجّی-

الف بې:(اَ-لف-بې)اسم- (۱)حروف تهجّی- (۲)دَ هر فن ابتدا-

الفت:(اُل-فَت)اسم- واحد- مذکر- مینه- دوستی- مُحبت- (م- عربی)-

الفته:(اَ-لف-ته)اسم صفت- دَ الفتن مصدر نه اسم مفعول- لېونے- (لهٔ مینې-) حېران- پرېشان- بېکاره- بدچلنه- آواره- بدمعاش- (م- فارسی)-

الف نامه:(اَ-لف-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- سی حرفی- دَ پټی پهٔ حرفونو لیکلے شعر یا شعرونه چې وړومبے حرف ئې دَ پټی دَ دغه حرف سره سم وی- (م- فارسی)-

القا:(اِل-قا)اسم- غورځونه- اچونه- الهام- غیبی اشاره- پهٔ زړه کښې دُ خدایٔ لهٔ خوا دَ یوې خبرې غرځونه- (عربی)-

القاب:(اَل-قاب)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ لقب جمع- (۲)دَ خط عنوان یا سر خط- (م- عربی)-

القارې:(اَل-قا-رې)اسم صفت- جمع- مؤنث- (۱)ژبی- (۲)بې انتها خواهش- (۳)چغې-

القصه:(اَل-قِ-صه)متعلق فعل- قصه کوتاه- غرض دا چې- (م- عربی)-

الک:(اَ-لک)اسم- واحد- مذکر- پرزبزے- پېروزے- وړوکے غلبېل- چنوزنے-

الک:(أ-لک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ملک- جمع الکان-

الکاري:(اَل-کا-ري)اسم صفت- جمع- مؤنث- ناري سوري- چغې- شور زوږ- کوکاري- القاري-

الکه:(اَل-که)اسم- واحد- مؤنث- حواله- قبضه- ولکه-

الکه:(أ-لَه-که)اسم- واحد- مؤنث-د الک مؤنث- (۱)وړوکې- پېغله- (۲)سپکه-

الکيش:(اَل-کيش)اسم صوت- سپي چا پسې کونه- سپي پاره کونه- سپي اچيش کونه- سپي کښکاونه-

الکي:(اَل-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ژلۍ- د ماشومانو يوه بيماري- (ش- شايد حلق سره نسبت لرونکې- عربي)- (۲)وګورئ القاري-

الکي:(اَل-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- جينۍ- جونه- جينکۍ-

الک:(أ-لک)اسم- واحد- مذکر- يو قسم نرم کاڼې چې لوښي ترې سازولے شي- شوکاڼې-

الکډ:(اَل-کډ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لکډ-

الکوړے:(اَل-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- اړی ګوړی- د ملکانو د يوې لوبې نوم- (ج) الکوړی-

الکونه:(اَل-کو-نه)اسم- واحد- مؤنث- سکښته- نخچه- د لباس نمونه چې وړومبے لۀ کاغذ نه تيارولے شي- خاکه- ونکه-

الکه:(اَل-که)اسم صفت- واحد- مؤنث- شنډه- چې بچی نۀ راوړی- جمع الکې-

الله:(اَل-لاه)اسم- د خدائ پاک نوم- (عربی)-

الله اکبر:(اَل-لا-هُ-اک-بر)کلمه تکبير- (۱)الله ډېر لوئ دے- (۲)د تکبير کلمه چې پۀ نمونځ کښې وئيلے شي- (۳)د حيرانۍ او تعجب کلمه- (۴)د جنګ پۀ ميدان کښې له ډېره جوشه اېستونکې کلمه-

الله هو:(اَل-له-هو)جمله- صفه خدائ دے- (م- عربی)-

الله جلله:(أ-لَل-له-ج-لَل-له)اسم- واحد- مؤنث- کوشش- بېړه- تلوار- تادی- هله ځله- اله ځله-

الله يار:(اَل-لاه-يار)اصطلاح- خدائ دې ملګرے- پۀ مخه دې ښه- د خدائ پۀ امان- دا کلمه پۀ دې معنو د بلوچستان پۀ سيمه وئيلے شي-

اللی:(أ-ل-لی)اسم- واحد- مؤنث- ريږديدنه- سخته تېږونه- فريادونه کونه-

اللے تللے:(اَ-ل-لے-تَ-ل-لے)صفت/متعلق فعل- سروهلے بروهلے- سرګردان-

الم:(اَلف-لام-ميم)حروف مقطعات- د قرآن شريف وړومبی سيپاره- (عربی)-

الم:(أ-لَم)اسم- واحد/جمع- مذکر- علم- عورے- د يو بوټی تخم چې د دارو د پاره استعماليږی-

الم:(أ-لَم)اسم- مذکر- غم- نول- رنځ-

الماری:(اَل-ما-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د کتابونو، کپړو يا لوښو د اېښولو لوئ صندوق چې درازونه يا خانې لری- (ش- پرتګېزی، فرانسيسی، لاطينی، هندی)-

الماس:(اَل-ماس)اسم اله- واحد- مذکر- د نوکونو د پرېکولو آله- نوک پرېک- نوک تراش- نوتراش-

الماسی:(اَل-ما-سی)اسم صفت- د لعل پۀ رنګ- د الماس سره تعلق لرونکے-

الماله:(اَل-ما-له)اسم- د کروندې د پاره زمکه جوړونه- د قلبې کولو نه پس ماله کونه-

المدد:(اَل-مَ-دَد)اصطلاح- د مدد غوښتلو د پاره ناره- (م- عربی)-

المر:(اَل-مَر)اسم- واحد- مذکر- نمر-لمر- مېرۀ سترګه- د زمکې او ځنې نورو سيارو د کشش مرکز او د رڼا او حرارت ذريعه-

الم سلم:(أ-لَم-سه-لَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)ثابت- (۲)روغ رمټ- جمع المونه سلمونه-

الم سور:(أ-لَم-سور)اسم صفت- (۱)بې صبری- بېړه- تلوار- (۲)شور زوږ- (۳)ورانے- (۴)د ملکانو د يوې لوبې نامه-

الم سورے:(أ-لَم-سو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حرص ناک- لالچ کونکے- لالچی- حرصی- زوسترګے- تيريا- اروا وړے- (۲)وران کارے- شيطان- شرير- شرارتی- جمع الم سوری-

الم غلم:(أ-لَم-غه-لَم)صفت- واحد/جمع- مذکر- منافق- دوه زړے- دوه ژبے- چلباز- چل ولی- الم غلمے- (۲)شخړه- (اسم)

الم غلمے:(أ-لَم-غه-له-مے)اسم صفت- وګورئ الم غليزه-

الم غليزه:(أ-لَم-غ-لي-زه)اسم صفت- دوکه باز- رياکار-

الم نشرح:(أ-لَم-نَش-رَح)اصطلاح- واضح- ښکاره- د قرآن سورة نشرح وړومبی الفاظ "آيا مونږ پرا نۀ نسته"-

المورے:(اَل-مو-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارمولے-

المه:(اَل-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زمکه- زېږه المه- فراخه زمکه- للمه- (۲)د "مېلمه" د افريدو تلفظ-

الميه:(اَل-مي-يه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دردناکه واقعه- غمژنونکې واقعه- (۲)داسې نظم، نثر يا ډرامه چې انجام ئې دردناک وی- (۲)المناک- (م- عربی)-

النج:(أ-لنج)اسم- واحد- مذکر- د ځنګلې الوچې ونه- نباتاتی نوم د پرونس ډومېسټيکا اېل (PRUNUS DOMESTICA L)- (م- فارسی)-

النګ:(أ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مورچه- (۲)شنيلے- چمن- (۳)دېوال- جمع النګونه- (م- فارسی)-

النګ:(أ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- خوا- اړخ- طرف- (م- هندی)-

النګو:(ا-لن-ګو)اسم- واحد- مذکر- بنګړے-

النګه:(أ-لن-ګه)اسم- واحد- مؤنث- لمبه- شعله- د اور شعله- (م- فارسی- النګه)-

النګه:(أ-لن-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دېوال- النګ- لوئ وچت- ګړنګ- (۲)مورچه- سنګر- څوکی- (م- فارسی)-

الو:(أ-لو)اسم- واحد- مذکر- مشهوره ترکاری- الو- پټاټه- جمع الوګان- نباتاتی نوم سولے نم ټيوسروسم-

الوا:(اَل-وا)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)حلوه- (۲)زروښه- زيری- (۳)اوښه-

ٽ" (ټی-رل)، "ي"(هې-ره-وَل)، "ڀ"(تن-ډېږ)، "ی"(پيا-لي)، تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

الوابوتې:(اَل-وا-بُو-تې)اسم- واحد- مذکر- دَ شکو دَ علاقې یو قسم نرې وابښۀ چې نرم ازغی لری- یو صحرانے بوټے- جمع الوابوتې- (دَ الوا او بوټي مُرکّب)-

الواد:(اَل-وادَ)اسم- واحد/جمع- مذکر- اولاد- بال بچ- خامن لُونړه- بچی- زويُ لور- نسل- زوزاد- پونګ- پښت- پېداوښ-

الوار:(اَل-وارَ)اسم- لرګی- چارتراش-

الواک:(اَل-واکَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نظر- دید- (۲)الوار- شواڼ- الواق- هلاک-

الوان:(اَل-وانَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لون جمع- سور رنګ- (۲)دَ سور رنګ یوه کپړه-

الواني:(اَل-وا-ني)اسم صفت- سور رنګ لرُونکے-

الوبالو:(اَ-لو-با-لو)اسم- واحد/جمع- مذکر- یوه مېوه او دَ هغې وُنه- دَ پرونس دَ خاندان یوه ونه- وګورئ ارغنچ-

الوبخاره:(اَ-لو-بُ-خا-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه تروه مېوه چې دَ خوړلو نه علاوه پخکړې، وریژو کښې هم استعمالیږي- نباتاتی نوم پرونس ډومیستیکا ایل ("PRUNUS DOMESTICA "L)- جمع الوبخارې- (ش- فارسی)-

الوبل:(اَ-لُو-بَل)اسم صفت- خلقېدونکے-

الوپیچ:(اَ-لُو-پیچ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم کچالو-

الوت:(اَل-وَت)حاصلِ مصدر- وګورئ الوتل-

الوتل:(اَل-وَ-تَل)مصدرِ لازم- ورزېدل- پۀ هوا کښې دَ وزرونو پۀ زور ګرځېدل-

الوتلے:(اَل-وَ-تۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع الوتلی- مؤنث الوتلې- وګورئ الوتل-

الوتن:(اَل-وَ-تَن)حاصلِ مصدر- وګورئ الوتل-

الوتنګ:(اَل-وَ-تَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ الوتل-

الوتنه:(اَل-وَ-تۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ الوتل-

الوتونکے:(اَل-وَ-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع الوتونکی- مؤنث الوتونکې- وګورئ الوتل-

الوتې:(اَ-لو-تې)اسم- جمع- مؤنث- دَ سختې بیماری پۀ وجه لۀ خلې وتونکې بې معنې خبرې-

الوچه:(اَ-لو-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ منډتې او الوبخارې پۀ شان یوه مېوه او دَ هغې ونه- نباتاتی نوم پرونس ډومستیکا ایل ("PRUNUS DOMESTICA "L)-

الوڅه:(اَ-لو-څه)اسم صفت- پټ- پۀ ډډه- پۀ څنګ- یو طرفته-

الود:(اَ-لودَ)اسم صفت- کاږر- سرکش- ضدی-

الود:(اَ-لودَ)لاحقه- دَ ځنې اسمونو پۀ آخر کښې پۀ راتللو دَ هغو سره دَ لړلو معنی مثلاً ګناه الود- پۀ ګناه لړلے- (م- فارسی)-

الوداع:(اَل-وَ-داعَ)اسم- رخصت- پۀ مخه ښه- الوداعی سلام-

الوداعی:(اَل-وَ-دا-عی)اسم صفت- دَ الوداع سره متعلق- (م- عربی)-

الودکر:(اَ-لود-کر)اسم- مذکر- دَ الوچې یو قسم- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ الوچه-

الوده:(اَ-لو-ده)اسم صفت- مذکر/مؤنث- لړلے- تپلے- ګنده- پلیت- ککړ- داغ لرونکے- لګېدلے- داغی- ابته- ګناه ګار- (کول/کېدل مصدرونه)- (م- فارسی)-

الوزول:(اَ-لُو-زَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)پۀ هوا کښې ګرځول- پورته کول- (۲)پۀ څۀ آتشی وسله وژل- (۲)لۀ خلې وکښل- لکه سا- خبره وغېره-

الوزولے:(اَ-لُو-زَ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع الوزولی- مؤنث الوزولې- وګورئ الوزول-

الوزون:(اَ-لُو-زَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ الوزول-

الوزونکے:(اَ-لُو-زَ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع الوزونکی- مؤنث الوزونکې- وګورئ الوزول-

الوزونګ:(اَ-لُو-زَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ الوزول-

الوزونه:(اَ-لُو-زَ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ الوزول-

الوزونے:(اَ-لُو-زَ-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع الوزوني- مؤنث الوزونې- وګورئ الوزول-

الوک:(اَ-لوکَ)اسم صفت- واحد- مذکر- کچه مېوه-

الوکردکو:(اَ-لو-ګر-دَ-کو)اسم- واحد- مذکر- غټه الوچه- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ الوچه-

الوکړکېراو:(اَ-لو-کړ-کې-راو)اسم- واحد- مذکر- دَ الوچې یو قسم-

الوکے:(اَ-لو-کے)اسم- مذکر- کچالو- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ کچالو-

الول:(اَل-وَل)متعلق فعل- (۱)ناڅاپه- (۲)پۀ زور سره-

الومل:(اَ-لو-مَل)اسم صفت- (۱)ډېر پوخ- خوږین- (۲)پوست- نرم-

الون بلون:(اَ-لون-بَ-لون)اسم صفت- (۱)زیاته تلوسه- بې حده خواهش- لېواله کېدنه- (۲)لړځې- ډېره سختی- (کول/کېدل- مصدرونه-)

الوول:(اَ-لو-وَل)اسم صفت- وَل وَل- تاؤ را تاؤ- کالکوتی- کرکوتی- کارکوتی- کللکوتی- کوړکتی- غټې غټې- اړنګ دوړنګ- کړی کړی- ادل بدل- ول پۀ ول- الووېل-

الووېل:(اَ-لُو-وېل)اسم صفت- وګورئ الوول-

الویل:(اَ-لو-یَل)مصدر البیل- (۱)الوی کول- (۲)ډېره کول- (۳)وریتول لکه دَ جوارو، دَ غنمو، دَ وړو- (۴)توږول-

الویلے:(اَ-لو-یۀ-لے)اسم صفت/مفعول- واحد- مذکر- جمع الویلی- مؤنث الویلې- وګورئ الویل-

الوین:(اَ-لو-ین)حاصلِ مصدر- وګورئ الویل-

الوینګ:(اَ-لو-ینګ)حاصلِ مصدر- وګورئ الویل-

الوینه:(اَ-لو-یۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ الویل-

الویونکے:(اَ-لو-یُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع الویونکی- مؤنث الویونکې- وګورئ الویل-

الوی کول:(اَ-لوی-کَ-وَل)مصدر- وګورئ الویل-

الویونے:(اَ-لو-یُو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع الویونی- مؤنث الویونې- وګورئ الویل-

الوېزان:(اَل-وې-زان)اسم صفت- سرګردان- اړندکړند- وار خطا- مګ پګ- پرېشانه- ترهور-

الویښ:(اَل-ویښ)اسم- واحد- مذکر- د باد نری وږمه- نری جلکه-

الوے:(اَ-لۀ-وے)اسم صفت- وریت- پوخ- کباب-

الوے:(اَ-لَ-وے)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم خړه مرغۍ، چې لکۍ یې وږده وی او آواز یې تېز وی-

الوے تلوے:(اَ-لۀ-وے-تہ-لۀ-وے)اسم- په بېړه- پۀ تادی- بې صبره-

اله:(آ-له)اسم- واحد- مؤنث- وسله- اوزار- برګ- جمع الې-

اله:(آ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هله- یرغل- حلمه- (۲)وګورئ الا-

اله:(آ-له)امر- هله- شابه- ژر شه- وکړه- بېړه کړه- تلوار وکړه-

الۀ:(ا-لاہ)اسم- واحد- مذکر- معبود- خدایٔ-

اله:(اُ-له)کلمه- د حېرت کلمه-

اله باش:(اَ-له-باش)اسم- (۱)تادی- تلوار- جلدی- (۲)شاباشے- (۳)کوشش- تلاش- زیار- (۴)خبرداری- انتباه-

اله بله:(اَ-له-بَ-له)صفت- واحد- مؤنث- فریاد- زاری- خواست- منت- التجا- جمع الې بلې-

اله بوله:(ا-له-بو-له)اسم مرکب- واحد- مذکر/مؤنث- ساده بوده- شوده- بوله- هغه سړے یا ښځه چې ساده وی- (د اله او بوله مُرکّب)- الۀ بولۀ-

اله پته:(اَ-له-پہ-تہ)صفت- تلوار کونکے- بېړه ناک-

اله پکه:(ا-له-پہ-کہ)اسم- واحد- مؤنث- کاشکنوله- د یوې مرغۍ نامه-

اله تانے:(ا-له-تا-نے)اسم- واحد- مؤنث- چنګو- د یوې مرغۍ نامه چې حلاله او د کونترې هومره وی- د سیندونو پۀ غاړو او جبو کښې ګرځی-

اله څیک:(اَ-له-څیک)اسم- واحد- مذکر- هغه ځایٔ چې واورۀ یې ویلې شوې وی-

اله خله:(اَ-له-خَ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ هله خله-

اله چلیک:(اَ-له-چل-یک)اسم- واحد- مذکر- اله څیک- نیم نیمګوری ویلې واورۀ چې څنې ځایٔ سپین او څنې خالی وی-

اله داد:(اَ-له-داد)اسم- واحد- مذکر- پټ پټانے- درب دربے- د هلکانو یوه لوبه- پټ پټونے-

اله کوله:(اَ-له-کو-له)اسم- واحد- مؤنث- شور شر- جنګ جګړه- اړه ګوره- کړېږ- بد انتظامی- اړے ګړے- جمع الې کولې-

اله مانه:(اَ-له-ما-نه)اسم- واحد/جمع- خامخا- ارومرو- پۀ هر صورت- (د اله او مانه مرکّب)-

الها:(اَل-ها)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ الهه-

الهاکی:(اَل-ها-کی)اسم- واحد- مؤنث- بددعا- ښېرې-

الهام:(اِل-هام)اسم- واحد- مذکر- د خدایٔ پاک لۀ خوا د انسان لۀ هدایت د پاره نازل شوے کلام- د خدایٔ خبرې- جمع الهامات/الهامونه- (م- عربی)-

الهامی:(اِل-ها-می)صفت- د الهام سره متعلق-

اله بولۀ:(ا-لۀ-بو-لۀ)اسم صفت- لېون سړے- لېون سارے- لېون غرے- لېون غر- لېون باګے- لیون شوت- لېونے- ساده بوده- لېون شوکے- لېون تارے-

الهنګ:(اَل-هنګ)اسم- واحد- مذکر- بې قراری- ژړا فریاد- ژړا انګولا- وېرتېږو- د زخمی هنګار- جمع الهنګونه-

الهه:(اِل-هه)اسم- واحد- مؤنث- خواهش آرزو- تلوسه- جمع الهې-

الیٔ:(اَ-لیٔ)حرف- د ندا توری چې د حېرانتیا پۀ وخت کښې ونېلے شی- (م- اخلئی یا هلئ- پښتو)-

الی:(اَ-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د زمکې سر ته هغه ټکړه چې د یوې نه پاتې شی- سربانډه- (۲)د ماشومانو یوه لوبه-

الیاس:(اِل-یاس)اسم- واحد- مذکر- د یو پېغمبر نامه چې پۀ وُچه باندې د مسافرو رهنمائی کوی- (م- عبرانی، عربی)-

الی الی:(اَ-لی-اَ-لی)اسم- جمع- مذکر- د ماشومانو د غنډسکې یوه لوبه، چې کوتاڼو ته یې ورغړوی- شېطان کوتی- مېرغلے- مرغلے- الی ولی-

الیان:(اِل-یان)اسم- جمع- مؤنث- واکې (افغانستان)-

الی بلی:(اَ-لی-بَ-لی)اسم- فریاد- د انصاف غوښتنه- زاری-

الی تار:(ا-لی-تار)اسم- واحد- مذکر- خوړلوړے- بېګال-

الیت پلیت:(اَ-لیت-پَ-لیت)اسم صفت- مذکر- مات ګډ- زیروزبر- ګډوډ- الیټ پلیټ-

الیټ پلیټ:(اَ-لیټ-پَ-لیټ)اسم صفت- وګورئ الیت پلیت-

الی ترپ:(اَ-لی-ترپ)اسم- د زړو یوه لوبه چې پکښې دوه لوبغاړی یو بل ته مخامخ پښې وغزوی او نور لوبغاړی ترې ټوپونه وهی-

الی جبلی:(اَ-لی-جہ-بہ-لی)اسم- پیشکوړے- د ګډا یو قسم- د زنانۀ یوه لوبه چې د یو بل لاس ونیسی- او پۀ ګډا کښې تېزې چورلی-

الی دودا:(اَ-لی-دو-دا)صفت- بې کاره سړے- خندنے-

الی دودو:(اَ-لی-دو-دو)اسم صفت- هغه سړے چې هر وخت په جلتی کښې وی-

الی دودو:(اَ-لی-دو-دو)اسم- واحد- مذکر- د یو مارغۀ نوم- بتخک- سائنسی نوم سیګنس ایس پی پی (CYGNUS SPP)-

الی شرنګ:(اَ-لی-شَرَنګ)اسم صوت- د ماشومانو پۀ لوبو کښې یوه وېنا-

الی شرنګ ړبلی:(اَ-لی-شَرَنګ-ړَ-بَ-لی)اسم- د ماشومانو د یوې لوبې نامه-

الیښادے:(ا-لی-ښا-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې پۀ ودونو کښې سندرې ونېل یې پېشه وی-

الیګډے:(اَ-لی-ګَ-ډے)اسم- واحد- مذکر- ملا چرګک- ګوډی چرګ- ګوری چرګ- ملا چرچک- د یوې مرغۍ نوم-

الیمشن:(اَ-لی-مۀ-شن)صفت- پۀ ځوانی کښې مړ- ځوانی مرګ-

الی ولی:(اَ-لی-وَ-لی)اسم- وګورئ الی الی-

ی" (ښی-رل)، ې"(مې-رہ-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

الې خلې:(أ-لې-خَ-لې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ هلې خلې-
الې دورې:(أ-لې-دو-رې)متعلق فعل/صفت- اخوادېخوا- هلته دلته- يو خوا بل خوا-
الېش:(أ-لېش)اسم- واحد- مذكر- بدل- عوض-
الېش و بدل:(أ-لېش-وَ-به-دل)اسم- ادله بدله- عوض معاوضه-
الېشول:(أ-لې-ش-وَل)مصدر- بدلول-
الېشولے:(أ-لې-ش-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع الېشولی- مؤنث الېشولې- وګورئ الېشول-
الېشون:(أ-لې-ش-وَن)حاصل مصدر- وګورئ الېشول-
الېشونكے:(أ-لې-ش-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع الېشونكی- مؤنث الېشونكې- وګورئ الېشول-
الېشونګ:(أ-لې-ش-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ الېشول-
الېشونه:(أ-لې-ش-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ الېشول-
الېشېدل:(أ-لې-شې-دل)مصدر لازم- بدلېدل- تبدیلېدل-
الېشېدلے:(أ-لې-شې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع الېشېدلی- مؤنث الېشېدلې- وګورئ الېشېدل-
الېشېدن:(أ-لې-شې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ الېشېدل-
الېشېدنګ:(أ-لې-شې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ الېشېدل-
الېشېدنه:(أ-لې-شې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ الېشېدل-
الېشېدونكے:(أ-لې-شې-دَون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع الېشېدونكی- مؤنث الېشېدونكې- وګورئ الېشېدل-
الېشېدۀ:(أ-لې-شې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ الېشېدل-
الېک سلېک:(أ-لېک-سه-لېک)اسم- وګورئ علېک سلېک-
الېکشن:(ا-لېک-شن)اسم- واحد- مذكر- انتخاب- خوښونه- د سیاسی نمائندګۍ د پاره مشر چوڼ كونه- (م- انګريزی)
الېلل:(أ-لې-لل)مصدر- كنځل-
الېلل:(أ-لې-لل)مصدر متعدی- په اُور سوزول-
الېللے:(أ-لې-لۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع الېللی- مؤنث الېللې- وګورئ الېلل-
الېلنه:(أ-لې-لۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ الېلل-
الېیل:(أ-لې-یل)مصدر- (۱)بلېدل- روښانه کېدل- (۲)وریتېدل-
الېیلے:(أ-لې-یۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع الېیلی- مؤنث الېیلې- وګورئ الېیل-
الېین:(أ-لې-ین)حاصل مصدر- وګورئ الېیل-
الېینګ:(أ-لې-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ الېیل-
الېینه:(أ-لې-یۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ الېیل-
الېیونكے:(أ-لې-یون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع الېیونكی- مؤنث الېیونكې- وګورئ الېیل-

الی:(ا-لی)اسم- مؤنث- چرمینه- سرباڼړی-
الے خلے:(أ-لے-خۀ-لے)اسم- واحد- مذكر- ښځه خاوند دوه په دوه-
ام:(آم/أم)اسم- واحد- مذكر- د کرمو او شکلنو سیمو یوه مشهوره خوږه میوه او د هغې وُنه- نباتاتی نوم مېنګی فېرا انډیکا (MANGI FERA INDECA)- جمع امونه- (ش- هندی)-
ام:(أم)اسم- د ماشومونو په ژبه کښې خوراک-
اما:(ا-ما)ضمیر- وګورئ زما-
امّا:(أم-ما)حرف- خو- مګر- لیکن-
امابعد:(أم-ما-بعد)حرف- خو له دې نه پس- پس د هغې- بیا-
اماتور:(ا-ما-تور)اسم صفت- وګورئ اناړی-
اماج:(أ-ماج)اسم- واحد- مذكر- ټکی- ګل زیری- نښه- (م- فارسی)-
امادګی:(آ-ما-دَ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- خوښه- رضا- غاړه کیښودنه- رضامندی- (م- فارسی)-
اماده:(أ-ما-ده)اسم صفت- چمتو- جوړ- تیار- رضا- راضی- رضامند- راضی مند-
امارت:(أ-ما-رَت)اسم- امیری- مشری- (م- عربی)-
امارګه:(أ-مار-ګه)اسم- مذكر- اُومبارکے- د ماشومانو سخا دانې-
امّاره:(أم-ما-ره)اسم صفت- حکم کونکے- (د نفس امّاره په شکل کښې استعمالیږی)- (م- عربی)-
اماکما:(ا-ما-کَ-ما)اصطلاح- لرې نژدې- دالې دورې- ایسته بیسته- اخوا دېخوا- یو ځائې بل ځائې- د لرې لرې- (م- غالباً د امازی او کمازی مخفف)-
اماله:(أ-ما-له)اسم- نرمېدنه- مائلېدنه- د ګرامر هغه قاعده چې د هغې لاندې زور د زبر په شان لستے شی لکه د رکاب په ځائې رکېب- (م- عربی)-
اماله:(ا-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- باتړ- ترسه- د قبض ماتولو باتړ-
امام:(ا-مام)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)پېشوا- رهنما- (۲)نمونځ وركونكے- (۲- اسم)د تسبو غټه دانه- (م- عربی)-
امام:(أ-مام)اسم- وګورئ حمام- (م- حمام)-
امام باړه:(ا-مام-با-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د اثنا عشری مسلمانانو د مجلس اوربدو ځائې- جمع امام باړې-
امامت:(ا-ما-مت)اسم- (۱)مشری- سرداری- د امام عهده- مذهبی لوئ والے- (۲)د لارې ښودنه- رهنمائی- قیادت-
امامتی:(ا-ما-م-تی)اسم- واحد- مؤنث- د امامت کار- د نمونځ وركولو کار-
امامیه:(ا-ما-می-یه)صفت- د امامانو سره متعلق- د شیعه مسلمانانو ټولے-
امان:(أ-مان)اسم- واحد- مذكر- (۱)پناه- حفاظت- (۲)آرام و آسائش-
امان:(أ-مان)اسم- واحد- مذكر- یو قسم بوټے چې د پټیو او شوملو

زبر "(غ-بۀ-ره)، زوركے"(شل)، پېش"(نو-كا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شكون)، ه"(ز-ړه)، ۀ"(یو-سې-دۀ)

د لوښی د رنګولو د پاره استعمالیږی-

امانت:(أ-ما-نَت)اسم- واحد- مذکر- په اعتبار ورکړے څیز- چا سره په حفاظت کښې د ایښودلو د پاره ورکړے څیز-

امانت دار :(اَ-ما-نَت-دار)صفت- مذکر- امانتی- امانت ګر- امین- د امانت څیز په حفاظت سره ساتونکے- (م- عربی)-

امانت داری:(أ-ما-نت-دا-ری)اسم- امانت لرنه- د امانت خیال ساتنه- (م- عربی)-

امانت سلامت:(أ-ما-نَت-س-لا-مَت)صفت- روغ جوړ- صحیح سالم- په تول پوره-

امانت ګر :(اَ-ما-نَت-ګر)اسم صفت- وګورئ امانت دار- (م- عربی)-

امانته:(اَ-ما-نَ-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- ټوله- ټوله په ټوله-

امانتی:(اَ-ما-نه-تی)اسم صفت- مذکر-امانت ګر- امین- معتمد- دیانتدار- امانت دار- جمع امانتیان-

امانټه:(ا-ما-نَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)واوره او باران ګډوړ- (۲)د واورې غټې دانې- د واورې غټ پوسی- امنټه-

امانژن:(اَ-مان-ژن)اسم- امان- یو قسم بوټے-

امانی:(أ-ما-نی)اسم صفت- (۱)پوره- ټول- سالم- (۲)پټ- خوندی- اعتباری- (۳- اسم)دیاړی- مزدوری- کچه مزدوری- (۴)یو کار په ټیکه ورکونه- د اجارې ضد-

امانی سلامی:(أ-ما-نی-س-لا-می)اسم صفت- (۱)سلامت- (۲)محفوظ- ثابت- (۳)روغ جوړ-

امانی:(أ-ما-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د امیر امان الله خان د دور افغانۍ-

امانے:(أ-ما-نے)اسم- واحد- مذکر- د لوندې خټې ټکره چې د کلکولو نه پس پکښې ماشومان سورے وکړی او د چورلندی لوبه پرې کوی-

امبا:(أم-با)اسم صوت- د غوا اواز- د غوا بغا- د غوا ږرته-

امبار :(أم-بار)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډیرے- ډیر- (۲)ذخیره- (۳)د غلې ګودام- (۴- صفت)بې قدره څیز- جمع امبارونه-

امبارخانه:(أم-بار-خا-نه)اسم- د غلې د ذخیره کولو ځائ- ګودام- انبار خانه-

امبارک:(أم-با-رَک)صفت- برکتی- برکت لرونکے- مُبارک-

امبارکښ:(أم-بار-کَښ)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- د کشتی ماڼکے- د کشتی څپیره یا چپه وهونکے-

امبارکی:(أم-با-ره-کی)اسم- مؤنث- مبارکی- مرغشکے- د چا په خوشحالی مغه ته خوشحالی ظاهرونه-

امبارکې:(أم-با-رَه-کې)اسم- جمع- مؤنث- د سترې شپیرې تبې دانې-

امبارکے:(أم-با-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د برکت دُعا- (۲)د سترګې ګل- (۳)پوله-

امباړی:(أم-با-ړی)اسم- جمع- مؤنث- ذخیرې-

امباری:(أم-با-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د یوې غرنیزې ونې نامه-

امباله:(أم-با-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چبوتره- (۲)مُناره- (۳)کجاوه- امبالی- امبانی- جمع امبالې-

امبالی:(أم-با-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کجاوه- (۲)مغه پولی چې په اوښ یا هاتی باندې وړلے شی-

امبالی:(أم-با-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)اوړنه- (۲)سر په سر ایښودنه-

امبانکه:(أم-با-نَه-که)اسم- واحد- مؤنث- غټه شان دانه چې سر کښې راخیژی- مورینه دانه-

امبانی:(أم-با-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د اوښ کجاوه- د ناوې امبالی- امباله-

امبر :(أم-بَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)کهربا- (۲)یو خوشبودار څیز- (م- عربی- عنبر)-

امبرانے:(أم-بَ-را-نے)اسم- مؤنث- د ماشومانو یوه لوبه- امرانه- انګی مل دي څوک-

امبر لوبه:(أم-بَر-لو-به)اسم- مؤنث- د پنډوس د لوبې یو قسم-

امبره:(أمبَ-ره)اسم صفت- مومره-

امبر چمبر:(أم-بَر-چَم-بَر)اسم صفت- یو بل کښې ننوتے- مُشت و ګریوان- پرزونه- یو بل سره ښخ- غوښې- خرښې- خرتیځې-

امبور:(أم-بور)اسم- واحد- مذکر- د ترکانې، لوهار او نورو کسب ګرو مغه کالے چې د څۀ ښخ څیز مثلاً مېخ وغیره وېستلو د پاره پکاریږی- جمع امبورونه- (ش- فارسی)-

امبولک سپدالک:(أم-بو-لَک-سې-دا-لَک)اسم- مذکر- د زنانوو یو قسم ګڼا-

امبیل:(أم-بیل)اسم- واحد- مذکر- امبل- هار- منه- منے- جمع امبیلونه- (م- عربی حمائل)-

امپړه ککے:(أمپَ-ره-کَ-کے)اسم- واحد- مذکر- ګلی پڼډی- ابس پڼډی- پڼډا ګلی- د هلکانو یوه لوبه-

امپه:(أم-پَه)اسم- واحد- مؤنث- د کانی نه جوړ شوے د خوان بوت-

امت:(أم-مَت)اسم- واحد/جمع- مذکر- د یو رسول منونکے جماعت- ټولے- جمع اُمتونه-

امتحان:(ام-ت-حان)اسم- واحد- مذکر- ازمائنه- ازموئنه- ازمائیل- ازمېښت- (م- عربی)-

امتحانی:(ام-ت-حا-نی)متعلق فعل- د امتحان سره متعلق- وګورئ امتحان- (م- عربی)-

امتداد :(ام-ت-داد)اسم- (۱)غزېدنه- وړدېدنه- وړدوالے- (۲)د جیومېټری په اصطلاح وړدوالے، پلن والے او ژوروالے-

امته:(ام-ته)اسم- واحد- مؤنث- هیله- طمع- آرزو- توقع- (افغانستان)-

امته دار :(اَم-ته-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ امته دار-

ی (ښی-رَل)، ې (هې-ره-وَل)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

امتی:(اُم-مه-تی)اسم- دَ اُمت سره متعلق- (ش- عربی)-

امتیاز:(ام-ت-یاز)اسم- واحد- مذکر- بېلتون- فرق- پرخ- تمیز- جُدائی- (م- عربی)-

امتیازی:(ام-ت-یا-زی)متعلق فعل- دَ امتیاز سره متعلق- وګورئ امتیاز-

امجد:(اَم-جد)اسم تفضیل/صفت- واحد- مذکر- ډېر مُعزز- زیات عزت من- ډېر قدرور- (م- عربی)-

امجل بنجل:(اَم-جَل-بن-جَل)اسم صفت- وګورئ ارجل برجل-

امجه:(اَ-م-جه)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بېکاره- نامرد- چنونا- نربښځے- (۲)مذبذب-

امچوره:(اَم-چو-ره)اسم- دَ کچه اَم وچې کړې ترازې چې دَ اوړهٔ کېدو نه پس پهٔ مصالحه کښې استعمالیږی-

امخته:(اَ-مخ-ته)اسم صفت- عادت شوے- عادتی- اموخته- روږدے-

آمد:(آ-مد)اسم- واحد- مذکر- (۱)کته- آمدن- آمدنی- (۲)دَ شاعری یوه اصطلاح- زړهٔ کښې پېدا شوې خبره-

امداد:(اِم-داد)اسم- واحد- مذکر- مرسته- کومک- مدد- (م- عربی)-

امدن:(اَ-مه-دَن)اسم- واحد- مذکر- امدنی- ګټه- فائده- حاصل- (م- فارسی)-

امدنی:(اَ-مه-دَ-نی)اسم- آمدن-

امد و رفت:(اَ-مد-وَ-رفت)اسم- واحد- مذکر- تلنه را تلنه- تعلق- راشه درشه- تلهٔ راتلهٔ- تګ راتګ- (م- فارسی)-

آمر:(آ-مر)اسم صفت/فاعل- واحد- مذکر- حاکم- حکم ورکونکے- ډکتېټر- حکم کوونکے- (م- فارسی)-

امر:(اَ-مر)اسم- واحد- مذکر- (۱)حکم- کار- (۲)الهٔ خدایه شوې وه- جمع اوامر- (م- عربی)-

امرا:(اُ-مه-را)اسم صفت- جمع- مذکر- (۱)دَ امیر جمع- غټان- لویان- دولت مند- (۲)دَ سلطنت ارکان- (م- عربی)-

امراض:(اَم-راض)اسم- جمع- مذکر- دَ مرض جمع- مرضونه- بیماری- ناروغتیا- (م- عربی)-

امرد:(اَم-رَد)اسم صفت- هغه هلک چې لا دَ ږیرې خط يُ پهٔ مخ نهٔ وی راغلے- پاک مخ هلک- نوعمر- ښکلے هلک- جنیے- پټه- نوخېز- سپینه خلهٔ هلک- پږ مخے هلک- کچه خلهٔ هلک- (م- فارسی)-

امرزنه:(اَ-مر-زه-نه)اسم- معافی- معاف کونه-

امرسه:(اَم-ره-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وریژو دَ اوړو نه جوړ خوږ ککوړے- چې غوړو کښې پخ شوے وی- جمع امرسې- (م- هندی)- (ش- امرتی/ش- اندرسا)-

امرکان:(اَ-مر-کان)اسم صفت- جمع- مذکر- وګورئ اُمرا- (متروک)-

امرل:(اَ-م-رل)مصدر متعدی- جنس پهٔ جنس بدلول- دَ یو قسم څاروی دَ بل قسم نه بڼیلول-

امرلے:(اَ-م-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع امرلی- مؤنث امرلې- وګورئ اُمرل-

امرنه:(اَم-ره-نه)اسم- انتخاب- خوښونه- چوڼ کونه-

امروت:(اَم-رُوت)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې مشهورې ونې او دَ هغې دَ مېوې نامه- امرود- جمع امروتان- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ امرود-

امرود:(اَم-رُود)اسم- واحد- مذکر- وګورئ امروت- نباتاتی نوم سیډیم ګوجاوا ایل (PSIDIUM GUJAVA L)-

امروزه:(اَم-رو-زه)صفت/متعلق فعل- همروزه روان- جاری- روزمره- دَ یوې ورځې پهٔ دوران کښې-

امروزی:(اَم-رو-زی)اسم- جمع- مؤنث- یو قسم آسمانی رنګ ململ چې سپین ټکی پکښې وی-

امرونکے:(اَم-رُن-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع امرونکی- مؤنث امرونکې- وګورئ امرل-

امره:(اَم-ره)اسم صفت- اسم- متعلق فعل- وګورئ امبره-

امریت:(آ-م-ری-یَت)ټول واکی- ټول واکتوب- دَ اَمر حکومت- امرانه نظام- یو حکومتی شعبه- (ډائریکټریټ) (افغانستان)-

امریکه:(اَم-ری-که)اسم- واحد- مؤنث- نوې دنیا چې کولمبس پهٔ ۱۴۹۸ کښې معلومه کړې وه-

امړق:(اَم-ړق)اسم- واحد- مذکر- ټوپونه- مستی- (م- همکنا- هندی)-

امړی:(اَم-ړی)اسم- واحد- مؤنث- مور- (م- هندی)- (مروت)-

امړے:(اَم-ړے)اسم- واحد- مذکر- وړومبے- مخکښې- لومبړے- مؤنث اَمړی- جمع امړی-

امړے:(اَم-ړے)اسم صفت- کچه- یو ستوے- پېمړے- یاستوے- اوم-

امزروټے:(اَم-زه-رو-ټے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- دَ امزری اسم تصغیر-

امزرے:(اَم-زَ-رے)اسم- واحد- مذکر- همزرے- ازمرے- مزرے- منزرے- زمرے- جمع امزری-

امسا:(اَم-سا)اسم- واحد- مؤنث- دَ لاس لرګے- کونتې- لکړه-

امساک:(اِم-ساک)اسم- (۱)التوا- ایسارونه- (۲)دَ انزال ایسارونه- (۲)دَ مال ایسارونه او نهٔ خرڅ کونه- (۴)دَ باران نه کېدهٔ- (م- عربی)-

امست:(اَ-مست)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پېرلوکار- (۲)سپین څیز-

امستل:(اَ-مَس-تَل)مصدر متعدی- بیلول- جُدا کول- دَ یو بل نه پکښې فرق کول- کوښی ګوښی کول- بیلتون راوستل- تمیز کول- (افغانستان)-

امستل:(اَ-مس-تل)مصدر- پېرل- پهٔ مزی کښې څهٔ پېرل-

امستلے:(اَ-مُس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اَمستلی- مؤنث اَمستلې- وګورئ اَمستل-

امستن:(اَ-مُس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ اَمستل-

امستن:(اَ-مس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ اَمستل-

امستنګ:(اَ-مُس-تَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اَمستل-

زبر "(خ-بهٔ-ره)" ، زورکے "(شل)" ، زېر "(ک-تاب)" ، پېښ "(نو-کا-ره)" ، جزم "(شکون)" ، "ه" (ز-ړه) ، "هٔ" (ږو-بې-دهٔ)

انهٔ پنخوس:(اَ-نهٔ-پن-خوس)اسم عدد- جمع- مذکر- نهٔ او پنخوس- لهٔ شپېتو یو کم-

انهٔ پنخوسم:(اَ-نهٔ-پن-خو-سَم)اسم عدد- جمع- مذکر- دٔ ۵۹ دٔ هندسې مذکر صفتی شکل-

انهٔ پنخوسمه:(اَ-نهٔ-پن-خو-سهٔ-مه)اسم عدد- جمع- مؤنث- دٔ ۵۹ دٔ هندسې مؤنث صفتی شکل-

انهٔ څلوېښت:(اَ-نهٔ-څل-وېښت)اسم عدد- جمع- مذکر- نهٔ او څلوېښت- لهٔ پنخوسو یو کم (۴۹)-

انهٔ څلوېښتم:(اَ-نهٔ-څل-وېښ-تَم)اسم عدد- جمع- مذکر- دٔ ۴۹ دٔ هندسې مذکر صفتی شکل-

انهٔ څلوېښتمه:(اَ-نهٔ-څل-وېښ-تهٔ-مه)اسم عدد- جمع- مؤنث- دٔ ۴۹ دٔ هندسې مؤنث صفتی شکل-

انهٔ دېرش:(اَ-نهٔ-دېرش)اسم عدد- جمع- مذکر- نهٔ او دېرش- لهٔ څلوېښتو یو کم (۳۹)-

انهٔ دېرشم:(اَ-نهٔ-دېر-شَم)اسم عدد- جمع- مذکر- دٔ ۳۹ دٔ هندسې مذکر صفتی شکل-

انهٔ دېرشمه:(اَ-نهٔ-دېر-شهٔ-مه)اسم عدد- جمع- مؤنث- دٔ ۳۹ دٔ هندسې مؤنث صفتی شکل-

انهٔ شپېتهٔ:(اَ-نهٔ-شپې-تهٔ)اسم عدد- جمع- مذکر- نهٔ شپېتهٔ- لهٔ اویاؤ یو کم (۶۹)-

انهٔ شپېتم:(اَ-نهٔ-شپې-تَم)اسم عدد- جمع- مذکر- دٔ ۶۹ دٔ هندسې مذکر صفتی شکل-

انهٔ شپېتمه:(اَ-نهٔ-شپې-تهٔ-مه)اسم عدد- جمع- مؤنث- دٔ ۶۹ دٔ هندسې مؤنث صفتی شکل-

انهٔ نوی:(اَ-نهٔ-نهٔ-ری)اسم عدد- جمع- مذکر- نهه او نوی- لهٔ سلو یو کم (۹۹)-

انهٔ نویایم:(اَ-نهٔ-نو-یا-یَم)اسم عدد- جمع- مذکر- دٔ ۹۹ هندسې مذکر صفتی شکل-

انهٔ نویایمه:(اَ-نهٔ-نو-یا-یه-مه)اسم عدد- جمع- مؤنث- دٔ ۹۹ هندسې مؤنث صفتی شکل-

انهٔ ویشت:(اَ-نهٔ-ویشت)اسم عدد- جمع- مذکر- نهه او شل- لهٔ دېرشو یو کم (۲۹)-

انهٔ ویشتم:(اَ-نهٔ-ویش-تَم)اسم عدد- جمع- مذکر- دٔ ۲۹ دٔ هندسې مذکر صفتی شکل-

انهٔ ویشتمه:(اَ-نهٔ-ویش-تهٔ-مه)اسم عدد- جمع- مؤنث- دٔ ۲۹ دٔ هندسې مؤنث صفتی شکل-

انه هنه:(ا-نه-هه-نه)حرف- دٔ انکار کلمه- نه-

انهٔ هنهٔ:(انهٔ-هنهٔ)حرف نفی- نه-

انیا:(اَ-نیا)اسم- واحد- مؤنث- نیا- دٔ مور یا دٔ پلار مور- جمع انیاګانې-

انیامده:(ان-یام-ده)اسم- واحد- مذکر- نیامده- ناڅاپه-

انیز:(ا-نیز)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٔ روپی شپاړسمه حصه- (۲)دٔ دوو، څلورو او اتهٔ انو سره دٔ لاحقې پهٔ توګه استعمالیږی- لکه څلور آنیز-

انیس:(اَ-نیس)صفت- ملګرے- دوست- (م- عربی)-

انې:(اَ-نې)حرف ندا- دٔ وینې مخفف- ګوره- دٔ مخاطب دٔ خبردارولو کلمه-

انې بانې:(اَ-نې-با-نې)اسم- ټال مټول- اخوا دېخوا کونه- حیلې بهانې-

انبر:(اَ-نبر)اسم- واحد- مذکر- (۱)مصیبت- غم- ظلم- انخبر- (۲)زبردستی- (۲)تاؤ- (۴)آفت- (م- هندی- اندهېر)-

انی:(ا-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)نیا- انا- دٔ مور مور- غوره نیا- (۲)هرې مشرې ښځې ته دٔ خطاب تورے- (۲)هغه وړه جینۍ چې دٔ عمر پهٔ لحاظ ډېره چالاکه او هُښیاره وی- پخنۍ- مشروټۍ- زیتکۍ-

انے:(اَ-نے)حرف- دٔ نسبتی لاحقې پهٔ طور استعمالېدونکے حرف لکه پیریانے- صحرانے-

انٟ:(انٟ)اسم- واحد- مذکر- دٔ خرهٔ آواز-

انغنج:(اَن-غنج)اسم- واحد- مذکر- الی- میرغلے- پشومېږی- دٔ ماشومانو یوه لوبه چې پکښې پهٔ زمکه کښې دٔ لوبغاړو دٔ شمېر سره برابر سُوری وکنستے شی او یو لوبغاړے پهٔ بل سُور شی، لاندینے لوبغاړے دغو سوریو (الیو) ته پنډوس ولی، کهٔ پنډوس دٔ مینځ سُوری کښې پریوځی نو لاندینے لوبغاړے ور منډه کوی او لوبغاړو کښې یو پهٔ دغه پنډوس وُلی- الی ولی- الی الی-

انکل:(اَن-کَل)اسم- واحد- مذکر- ګومان- شک- جمع انکلونه-

انکی:(اَ-ن-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دٔ بټېر یا مرز یو قسم- وړوکې بټېره یا مړزه چې جنګ نهٔ کوی- سائنسی نوم کټرنکس (COTURNIX)-

انکی بنکی:(اَن-کی-بن-کی)اسم- مؤنث- وګورئ انکې پنکې-

انکې پنکې:(اَن-کې-پن-کې)اسم- مؤنث- دٔ زړو یوه مشهوره لوبه- اکوبکو-

انکتی:(اَن-کهٔ-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)نښتنه- لاس اچونه- یو بل پزرې نښلېدنه- (۲)مستی کونه- غېږ پهٔ غېږ کېدنه- اړنګتی اچونه-

انل:(اَ-نل)مصدر- اوړول- اوړهٔ کول- مېده کول- نکول-

انلے:(اَ-نهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع انلی- مؤنث انلې- وګورئ انل-

انن:(اَ-نن)حاصل مصدر- وګورئ انل-

اننګ:(اَ-ننګ)حاصل مصدر- وګورئ انل-

اننه:(اَ-نهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ انل-

انول:(اَ-ن-ول)مصدر متعدی- غنډول- یو ځایَ کول- ټولول- چونې کول- خوښول-

انول:(ا-ن-ول)مصدر متعدی- کمزورے کول- بته کول (افغانستان)-

انولے:(اَ-ن-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع انولی- مونث انولې-

وګورئ اڼول-

اڼولے:(ا-ڼ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اڼولي- مؤنث اڼولې- وګورئ اڼول-

اڼون:(ا-ڼ-ون)حاصل مصدر- وګورئ اڼول-

اڼون:(ا-ڼ-ون)حاصل مصدر- وګورئ اڼول-

اڼونکے:(اَ-ڼ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اڼونکي- مؤنث اڼونکې- وګورئ اڼول-

اڼونکے:(ا-ڼ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اڼونکي- مؤنث اڼونکې- وګورئ اڼول-

اڼونګ:(اَ-ڼ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اڼول-

اڼونګ:(ا-ڼ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اڼول-

اڼونه:(اَ-ڼ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اڼول-

اڼونه:(ا-ڼ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اڼول-

اڼېخې:(اَ-ڼې-خې)اسم صوت- د خرۀ آواز-

اڼېدل:(اَ-ڼې-دل)مصدر لازم- چوڼ کېدل- تولېدل- غُنډېدل- يو ځاې کېدل-

اڼېدل:(ا-ڼې-دل)مصدر لازم- (۱)کمزورے کېدل- بته کېدل- (۲)هنېدل- جرېدل- برړېدل- ششنېدل- د خرۀ يا د اَس د مستۍ آواز کول- (ش- هندي هنهنانا)-

اڼېدلے:(اَ-ڼې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اڼېدلي- مؤنث اڼېدلې- وګورئ اڼېدل-

اڼېدلے:(ا-ڼې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اڼېدلي- مؤنث اڼېدلې- وګورئ اڼېدل-

اڼېدن:(اَ-ڼې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېدن:(ا-ڼې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېدنګ:(اَ-ڼې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېدنګ:(ا-ڼې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېدنه:(اَ-ڼې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېدنه:(ا-ڼې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېدونکے:(اَ-ڼې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اڼېدونکي- مؤنث اڼېدونکې- وګورئ اڼېدل-

اڼېدونکے:(ا-ڼې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اڼېدونکي- مؤنث اڼېدونکې- وګورئ اڼېدل-

اڼېدۀ:(ا-ڼې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېدۀ:(ا-ڼې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ اڼېدل-

اڼېړې:(اَ-ڼې-ړې)اسم- (۱)هنا- هنارے- د خرۀ يا د اس هنېدنه- (۲)کنکوسه- آوازه- چور چوره-

اڼېل:(اَ-ڼې-يل)مصدر- (۱)مېده کول- مېچن کول- (۲)دلول (افغانستان)-

اڼېين:(اَ-ڼې-ين)حاصل مصدر- وګورئ اڼېل-

اڼېينګ:(اَ-ڼې-ينګ)حاصل مصدر- وګورئ اڼېل-

اڼېينه:(اَ-ڼې-يۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اڼېل-

اڼېيونکے:(اَ-ڼې-يون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اڼېيونکي- مؤنث اڼېيونکې- وګورئ اڼېل-

اؤ:(ا-ؤ)حرف اشاره- هغه آواز چې غوايان پرې شړلے شي- غوايانو د کار کولو پۀ غرض د اماده کولو کلمه-

او:(او)حرف- (۱)د عطف حرف- (۲)بيا- (۳)د اتفاق ښکندولو کلمه- (۴)د خواب کلمه- (۵)د "نۀ" يا "نه" ضد- (۶)د ندا حرف- (۷)چاته د اواز کولو حرف-

اوا:(اَ-وا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ هوا- عاميانه-

اواخر:(اَ-وا-خر)اسم- جمع- مذکر- د آخر جمع- حد- انجام- انتها- (م- عربي)-

اوار:(اَ-وار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اکامانه سطح لرونکے چې يوه حصه ئې پۀ بله حصه لوړه نۀ وي- (۲)برابر سطح لرونکے- (۳)چې پۀ ګټو نرم او يو شان لګي- (۴)پۀ تګ کښې يو شان تېز- (۵)کم عقل- (۶)کُنه ورکونکے- مفعول- مؤنث اواره- جمع مؤنث اوارې- هوار- هموار- (۷- مذکر)شوکه- چُور- لوټ-

اوارول:(اَ-وا-ر-ؤل)مصدر متعدي- (۱)يو شان کول- غوړول- برابرول- ويړول- (۲)پرېکړه کول- (۳)لوټل- ورانول- ړنګول- خرابول-

اوارول:(اَ-وا-ر-ؤل)مصدر متعدي- د غلطۍ يا ګناه معاف کول-

اوارون:(اَ-وا-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ اوارول-

اوارونکے:(اَ-وا-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوارونکي- مؤنث اوارونکې- وګورئ اوارول-

اوارونګ:(اَ-وا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اوارول-

اوارونه:(اَ-وا-ر-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوارول-

اواره:(اَ-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)روغه جوړه- صُلح صفائي- (۲- صفت)د اوار مؤنث-

اواره:(اَ-وا-ره)صفت- (۱)بد معاش- (۲)بې مطلبه اخوا دېخوا ګرځېدونکے او وخت ضائع کونکے- (۳)بې سره بې سامانه- (ش- فارسي)-

اواره اوارې:(اَ-وا-ره-اَ-وا-رې)صفت- مرکب- پوره اوارېدنه- بېخي اواره- سم سمکے-

اواره کړونے:(اَ-وا-ره-کړو-نے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- معاف کونکے- معافي ورکونکے-

اواره ګرد:(اَ-وا-ره-ګرد)اسم صفت- اواره ګرځېدونکے- (م- فارسي)-

اواره ګردي:(اَ-وا-ره-ګر-دي)اسم- مؤنث- د اواره ګرد کار- (م- فارسي)-

اوارېدل:(اَ-وا-رې-دل)مصدر لازم- (۱)هموار کېدل- يکسان کېدل- برابرېدل- (۲)هېرېدل- د دوو سرو پۀ مېنځ کښې صلح صفائي راتلل- (۳)د غلطۍ يا ګناه معاف کېدل-

اوارېدن:(اَ-وا-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اوارېدل-

اوارېدنګ:(اَ-وا-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوارېدل-

اوارېدنه:(اَ-وا-رې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوارېدل-

اوارېدونکے:(اَ-وا-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوارېدونکي- مؤنث اوارېدونکې- وګورئ اوارېدل-

اوارېده:(اَ-وا-رې-دَه)حاصل مصدر- وګورئ اوارېدل-

اوارے:(اَ-وا-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ورانئ فېصله- دَ دوو تنو يا برخلافه ډلو مېنځ کښې صُلح صفائی- (۲)هوارے- برابرے- يو شان والے- (راوستل کول مصدرونه)-

اواز:(اَ-واز)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ هوا، اُبو يا بل څهٔ کښې داسې ارتعاش چې صرف غوږونه ئې معلومولے شي- (۲)پهٔ ځناورو کښې دَ ژبې پهٔ ذريعه دَ خپلو جذباتو يا خيالاتو دَ ښکاره کولو قوت چې پهٔ غوږونو اورېدے شي- غږ- نعره- (۳)دَ سندرو وئيلو صلاحيت- جمع آوازونه-

اوازه:(اَ-وا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شهرت- ناموری- غلغله- مشهورتيا- (۲)افواه- جمع آوازې- (م- فارسی)-

اواګير:(اَ-وا-ګير)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ هوا ګير-

اُواګي:(اَ-وا-ګي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ ښځې پهٔ شان يو غرنے بوټے-

اواوا:(اَو-اَ-وا)اسم- واحد- مؤنث- عيش- دَ زړهٔ آزادي- ايش نوري- (م- عربي- هو- هوا)-

اواورکے:(او-او-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو بوټے چې حکيمان ئې دَ آتشک دَ بيمارئ دَ پاره پکاروي- (۲)تندانه- اور اورکے-

اوائی:(اَ-وا-ئی)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ هوائی-

اوب:(اُوب)اسم- دَ يو څيز يا کار سره عارضي مينه- عارضي شوق- ناپائېداره او بې بُنياده مينه-

اوباز:(اوب-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- لامبوزن- اُبو سره لوبې کونکے- مؤنث اوبازه- (فارسی)-

اوبازي:(اوب-با-زي)اسم- مؤنث- لامبو-

اوباش:(او-باش)اسم صفت- اواره- بد چلنه- بد معاش- شوده- بد چلن- آوارهٔ ګرد- جمع اوباشان- مؤنث اوباشه- جمع مؤنث اوباشې- (م- فارسی)-

اوباشي:(او-با-شي)اسم- مؤنث- خوشي ګرځېدنه- اواره توب- بد چلندي- بد معاشي-

اوبال:(او-بال)اسم- واحد- مذکر- ګناه- آزار- دَ آخرت عذاب- وبال- (م- فارسی)-

اوبال ګر:(او-بال-ګر)اسم صفت- ګناهګار- اوبالي- (م- عربي)-

اوبالي:(او-با-لي)اسم صفت- وګورئ اوبال ګر-

اوبدل:(اوب-دَل)مصدر- اُودل- کپړه جوړول- دَ کډې کار کول- اودل-

اوبدلے:(اوب-دَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوبدلي- مؤنث اوبدلې- وګورئ اوبدل-

اوبدن:(اوب-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اُوبدل-

اوبدنګ:(اوب-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اُوبدل-

اوبدنه:(اوب-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اُوبدل-

اوبدونکے:(اوب-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوبدونکي- مؤنث اُوبدونکې- وګورئ اُوبدل-

اوبده:(اوب-دَه)حاصل مصدر- وګورئ اُوبدل-

اوبرن:(اوب-رَن)صفت- وګورئ اُبرن-

اوبري:(اوب-ري)صفت- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اُبري-

اوبښته:(او-بښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ملنځه- بلنځه- ديار- دَ ارچې يو قسم- يوه غرنيزه ونه- نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ ارچه، ارچړ- (۲)يوه تل شنه ونه چې دَ زيارت (بلوچستان) پهٔ علاقه کښې خاص طور سره کيږي- جونی پر- نباتاتي نوم جونی پرس (JUNI PRUS)-

اوبغارے:(اوب-غا-رے)اسم- واحد- مذکر- يو لوئې نقش چې پهٔ سرو او تورو تارونو دَ چُغې پهٔ ځنډو ګنډلے شي- په چُغو برګ تار-

اوبله:(اوب-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ سفر سامان- دَ سفر توښه- جمع اوبلې-

اوبلي:(اوب-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)بانړار- ګرواز- هغه کوهے چې خُله ئې ماته ګډه وي- کنډر کوهے- (۲)يو قسم بيماري-

اوبنه:(او-بهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه نرۍ پرده يا جالي چې پکښې بچے دَ مور پهٔ نس کښې پرورت وي- جمع ازبنې-

اوبمنی:(اوب-مَه-نِي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اوبنه-

اوبړ:(اُو-بړ)صفت- واحد- مذکر- (۱)زيرونکے- (۲)غصه شوے- (۳)حېران و پرېشان-

اوبورکے:(اوب-وه-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- جمع اوبورکي- دَ ځرمنې يوه خاصه توبه چې مشکی ئې دَ مشک لاندې پهٔ خپل مټ اَچوي چې پهٔ اُبو لوند نهٔ شي-

اوبه:(او-به)اسم- واحد- مؤنث- تپه- خاندان- کورنۍ- علاقه- (م- ترکی)-

اوبهٔ وړکے:(او-بهٔ-وړ-کے)اسم- واحد- مذکر- اوبهٔ رکی- څپوټے- هغه کپړه چې پکښې لوښے نغښتے شي- جمع اوبه وړکي-

اوبېر:(او-بېر)اسم- وارهٔ زارهٔ- بال بچ- بچه پونګ- اهل و عيال- دَ کور خلق- لوئې وارهٔ-

اوپچي:(اوپ-چي)اسم- واحد- مذکر- مسلح سپائی- (م- هندی)-

اوپره:(اُوپ-ره)اسم صفت- (۱)ناجانه- پردے- بېګانه- ناواقفه- (۲)بوګه- (۳)پرسېدلے- (۴)بې جانبداره-

اوپره پالے:(اوپ-ره-پا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- پردی خلق پالونکے- هغه کس چې نا پېژندګلو خلق پالي او ساتي-

اوپړي پوپړي:(اوپ-ړي-پوپ-ړي)اسم- جمع- مؤنث- (۱)دَ بېلو بېلو شيانو پهٔ باره کښې خبرې- (۲)کډې وډې خبرې- بې ارتباطه خبرې-

"ئ" (څې-رل)، "ې" (مې-ره-وُل)، "ی" (پيا-لې)، "ے" (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

اوت:(اَوتْ)اسمِ صفت- (۱)لږ شان زېږ- نیم تر- (۲- اسم)- خواهش- آرزو- تمنا- (۳)زمانه- دوره- وخت- مؤنث اوته-

اوتاد:(او-تادْ)اسم- جمع- مذکر- (۱)مېخونه- (۲)دَ اولیاؤ یو خاص ټولے- (۳)موږي- (عربي)-

اوتاک:(او-تاکْ)اسم- واحد- مذکر- کوټه- حُجره- دَ وَسپېدو ځاےُ- جمع اوتاکونه- (م- اطاق)-

اوتانے:(او-تا-نےْ)اسم- واحد- مذکر- تالاؤ- جوړ- ډنډ- دَ کلي دَ مېنځ تالاؤ- جبور- جمع اوتاني-

اوتر:(او-ترْ)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر- مست- باتریا- وارخطا- پاګل- بد حواسه- مؤنث اوتره-

اوتر توب:(او-تر-توبْ)اسم- وارخطاني- لېونتوب- بدحالي- بدحواسي- اوتري-

اوترتیا:(او-تر-تیا)اسم- اوتر توب-

اوترک:(او-ته-رکْ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ اترک بترک-

اوتروالے:(اَو-تر-وا-لے)اسم- وګورئ اوتر توب-

اوترول:(اَو-ته-ره-ول)مصدرِ متعدي- مستول- وارخطا کول- بدحواسه کول-

اوترون:(اَو-ته-ره-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترول-

اوترونکے:(اَو-ته-ره-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اوترونکي- مؤنث اوترونکې- وګورئ اوترول-

اوترونګ:(اَو-ته-ره-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترول-

اوترونه:(اَو-ته-ره-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترول-

اوتروۀ:(او-ته-ره-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترول-

اوتره:(او-ته-ره)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- وګورئ اوتر- دَ اوتر مؤنث-

اوتري:(او-ته-ري)اسم- وګورئ اوترتوب-

اوترېدل:(او-ته-رې-دل)مصدرِ لازم- وارخطا کېدل- بدحواسه کېدل- مستېدل-

اوترېدن:(او-ته-رې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترېدل-

اوترېدنګ:(او-ته-رې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترېدل-

اوترېدنه:(او-ته-رې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترېدل-

اوترېدونکے:(او-ته-رې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اوترېدونکي- مؤنث اوترېدونکې- وګورئ اوترېدل-

اوترېدۀ:(او-ته-رې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوترېدل-

اوتکے:(اوتْ-کے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- وتکے- تاخ- چاؤد- چوند- طاقچه- وړوکے طاق- وړه شان سوره یا نرے سورے- اوتکے-

اوتکے:(اوتْ-کے)اسم- واحد- مذکر- هغه سورے چې لوګے پرې وځي- په دېوال یا چت کښې موري- مګ- اوتکے- جمع اوتکي-

اوته:(او-ته)اسم- واحد- مؤنث- وتره زمکه- هغه نمژنه زمکه چې دَ تومني (تخم) کولو دَ پاره تیاره شي- دَ کر قابله زمکه- ږېمناکه زمکه- پووه-

اوتې بوتې:(او-تې-بو-تې)اسم- جمع- مؤنث- واحد نۀ لري- بې مطلبه خبرې- دَ سرسام په حالت کښې کېدونکې خبرې- اوترې- اکوبکو- چټیات- واهیات-

اوټ:(اوټْ)اسم- واحد- مذکر- ووړ بالي- بُوک- سر بنکته پښې پورته- بُوک چک- چک بُوک-

اوټاک:(او-ټاکْ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بې پروا- لاابالي- غافل- ازاد-

اوټه:(او-ټه)اسم- واحد- مؤنث- بې معنې خبره- بې بنیاده خبره- چټي خبره- دروغ- (م- هندی- اوټ پټانګ)- جمع اوټې-

اوټے:(او-ټے)اسم- واحد- مذکر- باري اوښ- دَ سورلي اوښ- تېز رفتاره اوښ- جمع اوټي- (ش- اونټ- هندی)-

اوجاړ:(اُو-جاړْ)اسمِ صفت- ویجاړ- دَ آباد ضد- ویران- برباد- لوټې لوټې- کنډکپر- مؤنث اوجاړه- جمع اوجاړي-

اوجاړوالے:(اُو-جاړ-وا-لے)اسم- ویجاړوالے- شاړوالے- ړنګ والے-

اوجاړول:(اُو-جا-ړه-ول)مصدرِ متعدي- ورانول- دَ استوګې نه ایستل- بربادول- غېر آبادول- شاړول- ړنګول-

اوجاړون:(اُو-جا-ړه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړول-

اوجاړونکے:(او-جا-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اوجاړونکي- مؤنث اوجاړونکې- وګورئ اوجاړول-

اوجاړونګ:(اُو-جا-ړه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړول-

اوجاړونه:(اُو-جا-ړه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړول-

اوجاړوۀ:(اُو-جا-ړه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړول-

اوجاړه اوجاړي:(او-جا-ړه-او-جا-ړي)(مُرکب)- صفت- مؤنث- ورانه وراني- ورانه ویجاړي- برباده بربادي- ډېره شاړتیا- ویجاړه ویجاړئ- ړنګه پنګه- لوګه لوګاني-

اوجاړي:(اُو-جا-ړي)اسم- واحد- مؤنث- بربادي- غېر آبادي- ویراني-

اوجاړېدل:(اُو-جا-ړې-دل)مصدرِ لازم- ړنګېدل- شاړېدل- ورانېدل- بربادېدل- شنډېدل- غېر آبادېدل-

اوجاړېدن:(او-جا-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړېدل-

اوجاړېدنګ:(او-جا-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړېدل-

اوجاړېدنه:(او-جا-ړې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړېدل-

اوجاړېدونکے:(او-جا-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اوجاړېدونکي- مؤنث اوجاړېدونکې- وګورئ اوجاړېدل-

اوجاړېدۀ:(او-جا-ړې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوجاړېدل-

اوجري:(اوج-ري)اسم- جمع- مؤنث- لړي- لړي کُلمې- لړي سوکزي- لړي سوپړي- اوجړي- دَ ګاروؤ دَ معدې یوه حصه-

اوجړي:(اوج-ړي)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ اوجري- (ش- اوجهړی- هندی)-

اوجغنجن:(اُوج-غن-جن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ اوجغنو ځبه جوړ شوے څیز- (۲)اوجغوني لرونکے-

اوجغونه:(اُوج-غو-نه)اسم- واحد- مؤنث- جمع اوجغونې- اُوژغونه- اُوژغونے-

زبر "(خ-بۀ-ره)، زورکے "(شل)، پېښ "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ه "(ز-ره)، ۀ "(ډو-بې-دۀ)

وُچغنے (دیر)- دَ بزې وېښتهٔ- دَ چېلی وېښتهٔ- (م- بز- وزه- غونے- وېښته)-

اوچه:(اُو-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اوره- وُژه- (۲)کب- کوب- دَ ځټ کوټے- ځټ سیرے- جمع اوچې-

اوچي:(اُو-چي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اُوړی- ووړی- اوژی-

اوځغي:(اوځ-غي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- توره غاړه- دَ ټخي، زُکام یو قسم-

اوچار:(او-چار)اسم صفت- واحد- مذکر- کبرژن- مغرور-

اوچاړ:(اُو-چاړ)اسم- واحد- مذکر- استر- ابره- هر هغه کنډلے ټوکے چې بالښت، توشک یا دغسې څهٔ نور څیز دَ پاسه دَ حفاظت لهٔ پاره خېژولے شي-

اوچته مرکونړی:(او-چه-ته-مَر-کون-ړی)اسم- مؤنث- یو قسم واښهٔ چې دَ غابښونو دَ درد لرې کولو دَ پاره فائده من وي-

اوچکل:(اُوچ-کل)اسم- واحد- مذکر-دَ وُچکل غلطه املا- وګورئ وُچکل-

اُوچونے:(اُو-چُو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پسونو او وزو یو قسم ناروغتیا- (۲)شپږ میاشتنے وَرے-

اوچه:(او-چه)اسم- واحد- مؤنث- اچه- دوه ښاخې- بړانکی- دوانګی- بوکر- جمع اوچې-

اوچې پوچې:(اُو-چې-پو-چې)اسم- مؤنث- اوتې بوتې- اپړې دوپړې- خَشې نبرې-

اوچېچه:(او-چې-چه)متعلق فعل- (۱)خامخا- خصوصی طور سره- اړومرو- ضرور- ضرور ناضرور-

اوچېچې:(او-چې-چي)حرف ندا- دَ مور پهٔ لاسو کښې دَ ماشومانو دَ دنګولو را دنګولو کلمه- (۲-اسم- مؤنث)بکواس- بې مطلبه خبرې-

اوځار:(اُو-ځار)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ ګته- ځرګند- مشهور- مؤنث اوځاره- جمع اوځارې-

اوځارتوب:(او-ځار-توب)اسم- مذکر- دَ اوځار کېدو حالت- ځرګندوالے- ښکاره توب- مشهورتیا-

اوځارتیا:(او-ځار-تیا)اسم- وګورئ اوځارتوب-

اوځارول:(او-ځا-ره-وَل)مصدر متعدی- ځرګندول- ښکاره کول- جوتول-

اوځارون:(او-ځا-ره-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اوځارول-

اوځارونګ:(او-ځا-ره-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوځارول-

اوځارونه:(او-ځا-ره-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوځارول-

اوځارونکے:(او-ځا-ره-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوځارونکي- مؤنث اوځارونکې- وګورئ اوځارول-

اوځاروهٔ:(او-ځا-ره-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اوځارول-

اوځارېدل:(او-ځا-رې-دَل)مصدر لازم- ځرګندېدل- ښکاره کېدل- جوتېدل-

اوځارېدن:(او-ځا-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اوځارېدل-

اوځارېدنګ:(او-ځا-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوځارېدل-

اوځارېدنه:(او-ځا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوځارېدل-

اوځارېدونکے:(اُو-ځا-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوځارېدونکي- مؤنث اوځارېدونکې- وګورئ اوځارېدل-

اوځارېدهٔ:(او-ځا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اوځارېدل-

اوځکرے:(اوځ-کهٔ-رے)اسم- مذکر- اکرکره- یو غرنیز بوټے دے چې دَ غابښونو دَ درد دَ پاره دَ دوا کار کوی- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ اوځکک-

اوځکک:(اُوځ-کک)اسم- واحد- مذکر- کرچې- اترقرحا- شاه تره- یو مشهور بوټے چې دَ وینې دَ پاکی دَ پاره ئې طبیبان ورکوی- نباتاتی نوم فویرا افسی نېلس-

اوځنړ:(او-ځنړ)اسم صفت- واحد- مذکر- اووهٔ اړخیز- هغه څیز چې اُوه اړخونه لری (افغانستان)-

اوخ:(اُوخ)کلمه- بوْ- باخو- باخوړے- یوه کلمه چې دَ ماشومانو دَ ویرولو دَ پاره وئیلے شي-

اوخ:(اوخ)حرف تاسف- اُف- دَ ارمان او حسرت کلمه- ارمان- افسوس- (عامیانه)-

اوخښے:(اوخ-ښے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اخښے-

اوخولے:(او-خَو-لے)اسم- واحد- مذکر- غرړے- دَ تبخی غوړه رژیې- لوړکے- پراته- جمع اوخولی-

اوخے:(او-خے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بې ضرره وړه حشره-

اوخې:(اُو-خې)کلمه- باګره- بوْ- بلا- دَ ماشومانو ویرولو یوه کلمه- اوخ-

اود:(اود)اسم- واحد- مذکر- تالاژ- ړنړ- جوړړ- جوغړ- جمع اودونه-

اوداسهٔ:(او-دا-سهٔ)اسم- دَ اودس مغیره حالت- دَ نمانځهٔ دَ پاره پهٔ اُبو پاکی حاصلونه- وګورئ اودس- (م- اَبدس- فارسی)-

اودان:(او-دان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ آبدان-

اودر:(اُو-دَر)اسم- واحد- مذکر- دَ پلار ورور- تره- کاکا-

اودس:(او-دَس)اسم- واحد- مذکر- دَ نمانځهٔ دَ پاره پهٔ مخصوصه طریقه ځان پاکونه- وضو- چاراندام- چاره دام- جمع اُودسونه-

اودس خانه:(او-دَس-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- غُسل خانه-

اودس مات:(او-دَس-مات)اسم- واحد- مذکر- (۱)اودس ماتے- ډکې مُتیازې- لویُ بول- صحرا ته تلنه- حاجت رفع کونه- (۲)داسې سړے چې اودس ئې نهٔ وی- (متروک)-

اودس ماتے:(او-دَس-ما-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ اودس مات معنی (۱)- (۲)دَ اُودس دَ حالت نه دَ بې اودسی حالت ته راتلنه- (مُرکّب)-

اودل:(او-دَل)مصدر- (۱)دَ تنستې او بودې نه کپره تیارول- (۲)دَ ښځو دَ سر وېښتهٔ کمځی کول- (۲)اوبدل-

اودلے:(او-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اودلی- مؤنث اودلې- وګورئ اودل-

اودن:(او-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اودل-

اودنګ:(اُو-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اودل-

اودنه:(اُو-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اودل-

اودونکے:(اُو-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اودونکی- مؤنث اودونکې- وګورئ اودل-

اودوم:(او-دُوم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ټوټکې علاج- هغه علاج چې پۀ اِېلس کښې دَ ټوټکې ټوټې پۀ دوا مشهور وی- (۲)دم دُرمه- اوده- دَ مرض دَ روغتیا دَ پاره تعویذ وغېره-

اوده:(اُو-ده)اسم- واحد- مؤنث- موده- دم- افسون- جمع اودې-

اوده دار:(اُو-ده-دار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دم ګر- افسون ګر- دَ اودې خاوند- اوده ګر-

اوده ګر:(اُو-ده-ګر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ اوده دار- مؤنث اوده ګره- جمع اوده ګری-

اودۀ:(اُو-دۀ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)خوبولے- بېدۀ- ودۀ- (۲)ساده- بې پروا- مؤنث اُوده-

اودی:(اُو-دي)اسم- واحد- مذکر- (۱)سُرخی ته مائل تور رنګ- (۲- اسمِ صفت)اُودی رنګ لرُونکے-

اودینه:(او-دی-نه)اسم- واحد- مؤنث- ادینه- دَ زیارت ورځ- دَ جمعې ورځ- (ش- ادینه- فارسی)-

اوېر:(او-ېر)صفت- مذکر- پناه- پټ-

اوېرنیول:(او-ېر-نی-وَل)مصدر- (۱)پټو خبرو ته غوږ نیول- پۀ پټه دَ چا خبرې اورېدل- غوږوونی نیول- (۲)اسکېرل-

اوېږے:(او-ېه-ږے)اسم- واحد- مذکر- هغه ټوپک چې اُوۀ ېزې کوی- ۷ ایم ایم بور ټوپک-

اوېل:(او-ېل)مصدر- ترتیب ورکول- سمول- سنبالول- درستول-

اوېلے:(او-ېۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع اوېلی- مؤنث اوېلې- وګورئ اوېل-

اوېن:(او-ېن)حاصلِ مصدر- وګورئ اوېل-

اوېنګ:(او-ېنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ اوېل-

اوېنه:(او-ېۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ اوېل-

اوېونکے:(او-ېُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع اوېونکی- مؤنث اوېونکې- وګورئ اوېل-

اوېنی:(اوېَ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پړُونے- لوپټه- دَ زنانو څادر- (م- هندی)-

اوېه ېوېه:(او-ېه-ېو-ېه)صفت- کږ چاپېر- اخوا دېخوا- خوا‌ژشا- نژدې نژدې-

اور:(اَ-ور)لاحقه- دَ فارسي دَ آوردن (راوړل) نه دَ امر صیغه چې دَ ځنو اسمونو آخر ته راځی او دَ لرُونکی معنې ورکوی- لکه زورآور-

اور:(اور)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لرغونی علم مطابق یو بنیادی عنصر چې دَ سوزېدو پۀ نتیجه کښې ئې رڼا او ګرمی پېدا کیږی- هور- (ش- عربی- آر)-

اور اُبۀ:(اور- اُ-بۀ)مرکّب- جمع- مذکر- خپلو کښې مخالف- (م- اور او اُبۀ)-

اوراتل:(اُو-را-تَل)مصدرِ لازم- ورزېدل- وراتل- پۀ هوا کښې تلل- الوتل (وزیرستان)-

اوراخاې:(او-را-خاې)اسمِ اشاره- هغه خاې-

اوراد:(او-راد)اسم- جمع- مذکر- وردُونه- وظیفې- (م- عربی)-

اوراق:(او-راق)اسم- جمع- مذکر- دَ ورق جمع- پاڼې- ورقونه- (م- عربی)-

اوراق:(او-راق)اسمِ صفت- غریب شوے- تاوانی شوے-

اور اورکے:(اور-او-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- هغه چینجے چې دَ شپې پۀ الوتو کښې رڼا کوی- باچاګړه- اوربلک- اوربلکه- اوربلکورے-

اوربڅرکے:(اورَ-به-څَر-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ اور سپرکے- اور بڅرے- (۲- اسم صفت)اورکے- مرچکے- اپت پوښی- تُندخویه- اُورژبے- جمع اوربڅرکی-

اوربخله:(اورَ-بخ-له)اسم- واحد- مؤنث- پېنځه- اوربلے- وربخوله- پرچوک- جمع اوربخلې-

اوربخوله:(اورَ-بخ-وۀ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اوربخله-

اوربستاړے:(اورَ-بس-تا-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ چېلی وروستو ترونے-

اوربسه:(اور-بۀ-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اوربشه- (عامیانه)-

اوربشکه:(اورَ-بش-که)اسم- واحد- مؤنث- اوربشی- دَ اوربشو پۀ شان یو وابۀ- جمع اوربشکې-

اوربشه:(اورَ-بۀ-شه)اسم- واحد- مؤنث-یوه مشهوره غله او دَ هغې بوټے چې پۀ اُوړی کښې کیږی دانه ئې دَ خوراک (خاص طور سره دَ ځناور دَ خوراک) او شرابو جوړولو لۀ پاره استعمالیږی- نباتاتی نوم هوروډیم ولګېر-

اوربشین:(اورَ-به-شین)اسمِ صفت- مذکر- دَ اُوربشو نه جوړ- مؤنث اوربشینه-

اوربشینه:(اورَ-به-شي-نه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- روټه- دَ اُوربشو ډوډۍ- جمع اوربشینې-

اوربشی:(اورَ-بۀ-شي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه وابۀ چې دَ اوربشو پۀ شان وی-

اوربل:(اورَ-بَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)خونه- کور- (۲)کوروسر-

اوربل:(اورَ-بَل)اسم- واحد- مذکر- دَ پېغلو ځونو دَ تندی وېښتۀ- پېکے پلکے- پولکے- جمع اوربلُونه-

اوربلک:(اورَ-به-لک)اسم- واحد- مذکر- یو چېنجے چې دَ شپې الوځی او رڼا کوی- اُوراُورکے- جمع اوربلکی-

اوربلکورے:(اورَ-بَل-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اوراورکے/اوربلک-

اوربلکه:(اورَ-به-لَ-که)اسم- واحد- مؤنث- اوراورکے- وګورئ اوربلک-

اوربله:(اورَ-بَه-له)اسم- واحد- مؤنث- جمع اُوربلې- اوربخوله- پېنځه- پېځه-

اوربوز:(اورَ-بُوز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وربوز-

اوربوشینه:(اور-بو-شي-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ اوربشینه- (عامیانه)-

اوربونی:(اور-بو-نی)اسم- واحد- مذکر- باړې- دَ کلي سره نژدې دَ کرلو زمکه-

اوربه:(اورَ-به)اسم- واحد- مذکر- دَ اور خاوند- جمع اوربانهٔ- مؤنث اوربنه-

اورپښت:(اور-پښت)اسم- واحد- مذکر- پتن- پتنګ- پروانه- اورپښتے-

اورپښتے:(اورَ-پښ-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اورپښت- جمع اورپښتي-

اورتور:(اور-تُور)اسم صفت- بنانسته- بهادر-

اورته:(اور-ته)اسم- واحد- مؤنث- ځنې- سنې- دَ بوجې جوال او داسې نورو دَ خُلو ګنډلو مزے- وربشلې وړی-

اورته:(او-ره-ته)اسم- واحد- مؤنث- عورته- نکاح شوې ښځه- جمع اورتې- (م- عورت- عربی)-

اورته:(اورَ-ته) متعلق فعل- ملته- وولته- اولته- هورته- مغلته- اخوا- درې ته-

اورټک:(اورَ-ټک)اسم- واحد- مذکر- چقماق- بکره- باکره- دَ اور لګولے کانړے- جمع اورټکي-

اورجغلی:(اورَ-جغ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ لیوهٔ اور- یو قسم واښهٔ چې له غوټې ې پهٔ زور سره سورکړو پورته کیږی-

اورجل:(اورَ-جَل)اسم صفت- واحد- مذکر- سوزېدلے- مؤنث اورجله- جمع اورجلي-

اورچنې:(اورَ-چِهٔ-نې)اصفت- وګورئ ورچنې-

اورخک:(اور-خَک)اسم- واحد- مذکر- تروکے- اورخک- یو قسم تریو واښهٔ چې اوچ خورلے شي- تریوکے-

اورخک:(اور-خَک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اورخک-

اورخاړے:(اورَ-خا-ړے)اسم- واحد- مذکر- ارخاړے- دَ کډو وزو یو مرض- وګورئ منګ-

اورړے:(اور-ړے)اسم صوت- دولی- کورنچا (دیر)- دَ ګیدړ ارړړے- ازنکا- نکولا- دَ ګیدړ آواز-

اورژبے:(اور-ژهٔ-بے)اسم صفت- واحد- مذکر- تېز زبانه- فصیح و بلیغ- جمع اورژبي-

اورشو:(اورَ-شو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ورشو-

اورشے:(اور-شے)اسم- واحد- مذکر- یو بدبویه بُوټے چې پلنې پاڼې از زیړ ګُل لري- سخا-

اورښت:(او-رښت)اسم- واحد- مذکر- جمع اورښتونه (۱)باران- باران وربدرنه- (۲)وازره وربدنه- (۳)چنی پربوتنه-

اورغالے:(اورَ-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)انغرے- دَ اور بلولو عارضی ځائ- انګیټی- زرغالے- (۲)طاق-

اورغو:(اورَ-غو)اسم- واحد- مذکر- زرغو- وراغه- وروغه- مېره- بیدیا- داګه- صحرا- دَشت- بیابان- جمع اورغوی- (م- راغ- فارسی)-

اورغوے:(اورَ-غهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- غرومے- ورغومے- ورغوے-

اورغی:(اورَ-غی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ارغی-

اورغی:(اورَ-غی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مغه لوګے چې دَ کوټې پهٔ چت یا دېوالونو پورې نښتے وی-

اورکی:(او-ره-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم شنهٔ سابهٔ چې کچه خورلے کیږی-

اورکے:(او-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- اوراورکے- اوربلک- جمع اورکي-

اورکے:(او-ره-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- تُند خویه- تېز مزاجه- اور ژبے- سخت طبیعته- تریخ-

اورګاړے:(اورَ-ګا-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ رېل ګاړے- جمع اورګاړي-

اورګړے:(اورَ-ګه-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- خانه خراب- جمع اورګړي-

اورګنې:(اورَ-ګه-نې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زړو چېړرو، رنجو یا زړوکو نه جوړ شوے تمبو یا کېږدی- دَ چېړرو پلان دسمان- (۲)دَ سپکوالی کلمه- جمع اورګنې-

اورلړلے:(اورَ-له-ړهٔ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ اورلړلے- شېطان- شریر- جمع اورلړلي- مؤنث اورلړلې-

اورلړونکے:(اورَ-له-ړون-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اورلړونے-

اورلړونے:(اورَ-له-ړو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ تنارهٔ دَ اُور لړلو لرګے چې تور شوے وی- (۲)کانړونے- جمع اورلړوني-

اورلښتے:(اورَ-لښ-تے)اسم- واحد- مذکر- ورلښتے- غرنیز بادام- جمع اورلښتي-

اورلګاندے:(اورَ-له-ګان-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع اورلګاندي- اورلګونکے (افغانستان)-

اورلګت:(اورَ-له-ګت)اسم- اورلګت- ماچس- باکس دَ اورتیلے- ګوګړ- تیلے- (افغانستان)-

اورلګیت:(اورَ-له-ګیت)اسم- وګورئ اورلګت (افغانستان)-

اورلے:(اورَ-لے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم واښهٔ چې پلنې پاڼې لری او پهٔ شګلینه او سخته زمکه کښې پیدا کیږی-

اورمر:(اورَ-مر)اسم- واحد- مذکر- نوسے- چمته-

اورمرک:(اورَ-مه-رک)اسم- واحد- مذکر- سمندر- دَ اور چینجے-

اورمل:(اورَ-مل)اسم- واحد- مذکر- دَ انځر ونه او مېوه- نباتاتی نوم فکس کاریکا-

اورمکے:(اورَ-مهٔ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)اوراورکے- اورکے- (۲)پروانه- پتنګ-

اورمولے:(اورَ-مو-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ وړو ماشومانو دَ یو مرض نامه چې پکښې پهٔ وړو دستُونه لګی- (۲)دَ ماشومانو دَ نس بهېدو ناروغتیا-

ئ (ښي-رل)، ئ (مې-ره-وَل)، ئ (پيا-لې)، ے (تن-دې) تفصیل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

اورمېږ:(اور-مېږ)اسم- واحد- مذکر- خټ- کړدن- ورمېږ- جمع اورمېږونه-

اورمېږک:(اور-مې-ږک)اسم- واحد- مذکر- سمندر- دَ اور چینجے- (افغانستان)-

اورنګ:(اَو-رَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بادشاهی تخت- (۲)دَ یو ګل نوم- نباتاتی نوم فیکس پامېټا (FICUS PALMATA)- (م- فارسی)-

اورنوسے:(اور-نو-سے)اسم- واحد- مذکر- اورمېږ- چمټه- هغه نوسے چې سکروټې پرې راخستے شی- نوسے- جمع اورنوسی-

اورنیوک:(اور-نی-وک)اسم- واحد- مذکر- اتشګیر- اورمېږ- چمټه- (افغانستان)-

اورنے:(اور-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه کپړه چې ماشوم پکښې نغاړی- جمع اورنی-

اوروړکے:(او-رو-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اوراوړکے-

اوروغ:(اَو-روغ)اسم- واحد- مذکر- ړول- خوند- ښائست- حُسن-

اورول:(او-ره-وَل)مصدر متعدی- (۱)وررول- نښتل- شندل- خوارهٔ وارهٔ ویشتل- (۲)دَ غوږ پهٔ ذریعه دَ اواز محسوسول او معلومول-

اورون:(اَو-ره-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اورول-

اورونکے:(اَو-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اورونکی- مؤنث اورونکې- وګورئ اورول-

اورونګ:(اَو-رَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اورول-

اورونه:(اَو-رَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اورول-

اوره:(او-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پړله-

اوره رنګ:(او-ره-رَنګ)اسم- واحد- مذکر- شیشی رنګ- لمسی رنګ- ګلی خار- سرهٔ شان دارو چې دَ خورو سترګو دَ پاره پکاریږی-

اوره لنګ:(او-ره-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم غرنیز واښهٔ چې بېخ ئې سور وی او دَ څرمنې مشکونو رنګولو دَ پاره پکار راځی- (۲)یو قسم دارو چې دَ پښې دَ پړسوب دَ علاج دَ پاره پکارولے شی-

اورهٔ:(اَو-رهٔ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اوریځ- دَ باران نه ورانديِ آسمان خړېدنه- (۲)پهٔ سترګه باندې خړه پرده-

اورهٔ لړه:(او-رهٔ-له-ړه)اسم- مؤنث- نرۍ وریځ- نرے دُوند- نرۍ لړه- (م- اورهٔ او لړه)-

اوریا:(اور-یا)اسم- واحد- مؤنث- باران- ورښت- اورے-

اورېته:(اَو-رې-ته)متعلق فعل- دلته- دولته- دېلې- دلې دولې- هغه خوا دېخوا-

اورې:(او-رې)اسم اشاره- (۱)ملته- هغه خوا- الته- هغه پلو- (۲)اخرت- هغه جهان- هغه دنیا-

اورې پورې:(او-رې-پو-رې)متعلق فعل- پورې غاړه- هغه خایه پورې-

اورېدل:(اُو-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)اوروېدل- دَ غوږ پهٔ ذریعه دَ آواز محسوسېدل او معلومېدل- دَ سامعې دَ حس استعمال کېدل- (۲)منل کېدل- قبلول- دَ حاکم یا منصف عدالتی فرض پوره کول- (۳)خبر مونډل- (۴)شیندل کېدل- نښتل کېدل-

اورېدلے:(اَو-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اورېدلی- مؤنث اورېدلې- وګورئ اورېدل-

اورېدن:(اَو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اورېدل-

اورېدنګ:(اَو-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اورېدل-

اورېدنه:(اَو-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اورېدل-

اورېدونکے:(اَو-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اورېدونکی- مؤنث اورېدونکې- وګورئ اورېدل-

اورېدهٔ:(اَو-رې-دهٔ)اسم- جمع- مذکر- اوریا- اورښت- وربدنه- وربدهٔ-

اورېدهٔ:(اَو-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اورېدل-

اوربکے:(او-رې-کے)اسم- مذکر- پهٔ وړینو څیزونو، کمبلو وغیره کېدونکے یو خاص نقش یا ګل-

اورۍ:(اَو-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ غاښونو لهٔ ژامنو کېر چاپېره غوښه- (۲)دَ نوکونو کېر چاپېره غوښه- (۳)دَ اوریٔ مؤنث- دَ کېږ بچۍ- (۴)دَ سوي بچۍ- (۵)دَ ترنجبی دَ سمولو دَ پاره دَ لرګی آله-

اورے:(او-رے)اسم- مذکر- باران- ورښت- اوریا- اور-

اورے:(او-رے)اسم- واحد- مذکر- ورے- ورغومے- اورغومے- جمع اوری-

اورے:(او-رے)اسم- واحد- مذکر- اموړے- دَ شرشم پهٔ شان یوه نرۍ دانه چې عربی کښې ورته خردل وائی او دَ اچار پهٔ جوړولو کښې پکاریږی-

اوړ:(اُوړ)اسم- واحد- مذکر- دَ جولاګانو دَ تنستې یو کالے- جمع اوړونه-

اوړبه:(اوړ-به)اسم- واحد- مذکر- هغه سړے چې اوړهٔ خرڅوی- جمع اوړبانهٔ- مؤنث اوړبنه- جمع مؤنث اوړبنې-

اوړت:(او-ړت)اسم- واحد- مذکر- وړت- کرکه- نفرت-

اوړدو:(اوړ-دو)اسم- واحد- مذکر- دَ پناه ځائې- کېمپ- (م- ترکی- اُردو)-

اوړکے:(اوړ-کے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- ویړکے- وړکے- دَ وړوکے اسم تصغیر- دَ لویٔ ضد- پهٔ قد، حجم یا مرتبه کښې کم- جمع اوړکی- مؤنث اوړکې-

اوړل:(اَو-ړل)مصدر متعدی- (۱)دَ چرګ او داسې نورو مرغانو یوه یوه دانه اخستل- بیلول- اېول- چوڼ کول- یوه یوه دانه ټولول- غنډول- (۲)ګالل- منل- زغمل-

اوړلے:(اَو-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوړلی- مؤنث اوړلې- وګورئ اوړل-

اوړمبے:(او-ړم-بے)صفت- واحد- مذکر- وړومبے- لومړے- وړمبے- اول- مخکښې- دَ یو دَ هندسې صفتی شکل-

اوړن:(اَو-ړن)حاصل مصدر- وګورئ اوړل-

اوړندوکے:(اَو-ړن-دو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- بې ټیکاوه- متلون مزاجه- هر دم خیاله- جمع اوړندوکی-

اوړنګ:(او-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوړل-

اوړنه:(او-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوړل-

اوړنی:(اوړ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث پړونے- اوړنے-

اوړنے:(اوړ-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه کپړه چې ماشوم پکښې تړلے شي- اُړنے- جمع اوړني-

اوړنے:(اوړ-نے)اسم- واحد- مذکر- ټيکرے- پړونے- چونی- څکلی- دَ ښځو سرولو وړوکے څادر- وړونے-

اوړوبے:(او-ړو-بے)صفت- واحد- مذکر- ګډوبے اتوب- خروے- شلالے- ړوز- ارداوه- ارتاوه- اړداوه- خناورو ته دَ ورکولو دَ پاره دَ اُبو او اوړو ممزوج- جمع اوړوبی-

اوړول:(او-ړه-وَل)مصدر متعدی- اوړهٔ کول- مېده کول-

اوړون:(اُو-ړُون)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترتيب- (۲)تنظيم- (۳)ګردان-

اوړون:(او-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اوړول-

اوړونکے:(او-ړه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوړونکي- مؤنث اوړونکې- وګورئ اوړول-

اوړونګ:(او-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوړول-

اوړونه:(او-ړه-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوړول-

اوړه:(اُو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اړم- اوړم- هغه لرګے چې پهٔ کلو کښې دَ ور بندولو دَ پاره لګولے شي- (۲)اوزار-

اوړهٔ:(او-ړهٔ)اسم- جمع- مذکر- دُوړه- دیره- وړهٔ-

اوړې پاوړې:(او-ړې-پاوْ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)بې مطلبه خبرې يا کارونه- اوبې چوټې- کږې خبرې يا کاږهٔ کارونه- ګډې وډې خبرې يا ګډوډ کارونه- (۲)انې بانې-

اُوړېدل:(او-ړې-دَل)مصدر لازم- (۱)اوښتل- تېرېدل- مخکښې تېرېدل- دَ څهٔ څيز دَ پاسه جسم تېرول- (۲)پهٔ تکليف کښې مُبتلا کېدل- (۳)پيښېدل- (۴)دَ بدن دَ اندام خصوصاً دَ لاس، پښې بې ځايه کېدل- (۵)دين پرېښودل- بدلېدل-

اوړېدل:(او-ړې-دَل)مصدر لازم- اُوړه کېدل- مېده کېدل- وُړه کېدل- انېدل- اوړهٔ جوړېدل-

اوړېدل راوړېدل:(او-ړې-دَل-راوْ-ړې-دَل)مصدر- (۱)وجود لهٔ يو خوا او بل خوا حرکت ورکول- (۲)اخوا دېخوا ګرځېدل- ملې دورې کېدل- اواره ګرځېدل- سرېله ګرځېدل- (۳)وخت تېرول- کار پهٔ شوق نهٔ کول-

اوړېدلے:(او-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوړېدلی- مؤنث اوړېدلې- وګورئ اوړېدل-

اوړېدلے:(او-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اُوړېدلی- مؤنث اُوړېدلې- وګورئ اوړېدل-

اُوړېدن:(او-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اُوړېدل-

اوړېدن:(او-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اوړېدل-

اُوړېدنګ:(او-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اُوړېدل-

اوړېدنګ:(او-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوړېدل-

اُوړېدنه:(او-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اُوړېدل-

اوړېدنه:(او-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوړېدل-

اُوړېدونکے:(او-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اُوړېدونکي- مؤنث اُوړېدونکې- وګورئ اُوړېدل-

اوړېدونکے:(او-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوړېدونکي- مؤنث اوړېدونکې- وګورئ اوړېدل-

اُوړېدهٔ:(او-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اُوړېدل-

اوړېدهٔ:(او-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اوړېدل-

اوړې راوړې:(او-ړې-راوْ-ړې)اسم (مرکب)- وګورئ اوړې پوړې-

اوړے:(او-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ سختې ګرمۍ موسم- جمع اوړي-

اوزار:(او-زار)اسم- جمع- مذکر- دَ استکار دَ کار کالی- دَ کار آلې-

اوزان:(اَو-زان)اسم- جمع- مذکر- دَ وزن جمع-

اُوزر:(اُو-زر)اسم- واحد- مذکر- عُذر- زوَر- لاس نيوهٔ- دَ مړي فاتحه- چاسره پهٔ غم کښې دَ ممردی او غمرازی څرګندونه- جمع اُوزرُونه- (م- عذر)-

اوزرول:(اُوز-ره-وَل)مصدر متعدی- عُذرول- عذر کول- لاس نيوه کول- مړي ته فاتحه کول- چاسره په غم کښې دَ ممردی او غمرازی څرګندول-

اوزرولے:(اُوز-ره-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوزرولي- مؤنث اوزرولې- وګورئ اوزرول-

اوزرون:(اُوز-ره-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اوزرول-

اوزرونکے:(اُوز-ره-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوزرونکي- مؤنث اوزرونکې- وګورئ اوزرول-

اوزرونګ:(اُوز-ره-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوزرول-

اوزرونه:(اُوز-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوزرول-

اوزروهٔ:(اُوز-ره-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اوزرول-

اوزرېدل:(اُوز-رې-دَل)مصدر لازم- وګورئ عُذرېدل-

اوزرېدلے:(اُوز-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوزرېدلي- مؤنث اوزرېدلې- وګورئ اوزرېدل-

اوزرېدن:(اُوز-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اوزرېدل-

اوزرېدنګ:(اُوز-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوزرېدل-

اوزرېدنه:(اُوز-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوزرېدل-

اوزرېدونکے:(اُوز-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوزرېدونکي- مؤنث اوزرېدونکې- وګورئ اوزرېدل-

اوزرېدهٔ:(اُوز-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اوزرېدل-

اوزغنړن:(اوز-غن-ړَن)صفت- مذکر- اوزغنړه- دَ بزو دَ وېښتو نه جوړ څيز- مؤنث اوزغنړنه-

اوزغنه:(اُوز-غه-نه)اسم- جمع- وژغونه- دَ برو وبشته- جمع اوزغنې-

اوزکے:(اُو-زه-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ لرګو پیټے- دَ لرګو ګېډے- دَ لرګو بار- وزاکانے- جمع اوزکی-

اوزګار:(اُوز-ګار)صفت- مذکر- فارغ- چې کار نهٔ لری- خالی-

اوزګارتوب:(اُوز-ګار-توب)اسم- مذکر- فارغتوب- بېکاری- فراغت-

اوزګارتیا:(اُوز-ګار-تیا)اسم- وګورئ اوزګارتوب-

اوزګاروالے:(اُوز-ګار-وا-لے)اسم- وګورئ اوزګارتوب-

اوزګارول:(اُوز-ګا-ره-ول)مصدر متعدی- فارغول- خالی کول- بېکاره کول- لهٔ کاره وېستل-

اوزګارون:(اُوز-ګا-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ اوزګارول-

اوزګارونکے:(اُوز-ګا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوزګارونکی- مؤنث اوزګارونکې- وګورئ اوزګارول-

اوزګارونګ:(اُوز-ګا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اوزګارول-

اوزګارونه:(اُوز-ګا-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوزګارول-

اوزګارېدل:(اُوز-ګا-رې-دل)مصدر لازم- فارغېدل- خالی کېدل- فرصت موندل- بې کاره کېدل- وزګارېدل-

اوزګارېدن:(اُوز-ګا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اوزګارېدل-

اوزګارېدنګ:(اُوز-ګا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوزګارېدل-

اوزګارېدنه:(اُوز-ګا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوزګارېدل-

اوزګارېدونکے:(اُوز-ګا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوزګارېدونکی- مؤنث اوزګارېدونکې- وګورئ اوزګارېدل-

اوزګارېدهٔ:(اُوز-ګا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اوزګارېدل-

اوزګرے:(اوز-ګهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- جمع اوزګری- څېرلے- دَ بزې نر- دَ چېلۍ نر- وز- څېرلکوټے- اسم تصغیر- څېرلکے- چیلے- چیرے-

اوزمېیل:(اوز-مې-یل)مصدر- ازمائېل- ازمېښت کول- امتحان اخستل- دَ امتحانی دُور نه تېرول-

اوزه:(او-زه)اسم- واحد- مؤنث- بزه- بیزه- چېلۍ- وُزه- جمع اوزې- (ش- بز- فارسی)-

اوزه:(او-زه)اسم- واحد- مؤنث- انبالی- پالکی- دَ ماتی دَ شا کجاوه- جمع اوزې-

اوزې کوزې:(اُو-زې-کُو-زې)اسم- جمع- مؤنث- لرې- پهٔ فاصله- (دا لفظ صرف دَ "راتلل" سره استعمالیږی- "تللو" سره نه) مثال لهٔ اوزو کوزو خلق راغلی وو"- (ش- عربی- حواز- لرې)-

اوزے:(او-زے)اسم- مذکر- وزر- څانګ- لېچه- دَ پسهٔ یوه پښه-

اوزې لکے:(او-زې-له-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم پئ لرونکی بوټے چې زېړې وړې پاڼې لری- شودهٔ پئ-

اوزۓ:(او-زه-ۓ)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ بزې سره تعلق لرونکے- وزنین (افغانستان)-

اوژری:(اُوژ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ څناور لرے- (م- هندی- اوجهری)-

اوژغونه:(اوژ-غو-نه)اسم- وګورئ اوزغنه-

اوژن:(او-ژن)اسم- مذکر- دَ اُبو ژے چې دَ اش ورکولو پهٔ حال کښې وی-

اوژی:(اُو-ژی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اوړی- دَ غاړې یو پسول-

اوړبی:(اوړ-بی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یوه ښکلې برګه مرغۍ-

اوړد:(او-ړد)اسم صفت- واحد- مذکر- لوی- جمع اوږدهٔ- دَ وُږد غلطه املا-

اوږده مېریانه:(اوږ-ده-مېر-یا-نه)اسم- واحد- مؤنث- جمع اُوږدې مېریانې- (۱)وُږد مرچکے- نباتاتی نوم دَ ایلیم پورم یو قسم- (۲)یوالو (وې وملو)- دَ ماشومانو یوه لوبه ده چې دَ کومې ړلې ماشومان پړ شی- دَ ړلې ړړې مغه پرې سورلی کوی- خره بلوله-

اوړکی:(او-ړه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اوره- دشتی اوره- دَ پیازو پهٔ شان یو غنم ځیز چې پلے لری- پهٔ بیدیا کښې کیږی- اوړکے "ګندنا"- (افغانستان)-

اوړمکه:(اوړ-مهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- سپوږمی- ږومکی-

اوړمکی:(اوړ-مه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)اوره مکه- سپوږمی- سپوږی- ږومکه- (۲- صفت)مؤنث- ښکلې ښځه-

اوړمی:(اوړ-می)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سپوږمی- سپوږمے- اوړمکه- اوړمکی-

اوره:(اُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ هوره- نباتاتی نوم ایلیم سیتې مم (ELIAM CHIMUM)- جمع اورې-

اوره:(او-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ځټې او مټې تر مینځه دَ وُلی حصه- جمع اورې-

اوره مکه:(او-ره-مهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اوړمکی-

اوره ور:(او-ره-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ وړدو اوړدو خاوند- مؤنث اوره وره- جمع مؤنث اوره ورې جمع اوره وری-

اوړهٔ:(او-ړهٔ)اسم- جمع- مذکر- وارړهٔ- دَ غوا مېښې اولنی ټینګ پئ-

اوری:(او-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پیمانه- مغه لوښے چې غله پرې پیمانه کولے شی- وری- دَ اوو (۷) سېرو پیمانه- کونډی (دیر)- کاسه- اوکی-

اوری:(اُو-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ غاړې یو پسول-

اوری:(او-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مغه بوټے چې دَ پیازو پهٔ شان وی- دَ اوړې کورنۍ څخه ځنګلی اوره- اوړکی- ګندنا- (ګیاه قېصر- فارسی)-

اوړے:(او-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ انډی شلمه برخه-

اوړے:(او-ړے)اسم- واحد- مذکر- یو صحرائی دَ پسرلی ګل-

اوس:(اوس)اسم ظرف- فی الحال- پهٔ دې وخت- پهٔ دې ټکی- لهٔ دې نه پس- لهٔ مغه پس- نتیجةً- پهٔ دې ساعت- دَ هېر نژدې تېرشوی کار دَ پاره-

اوسا:(او-سا)صفت- وګورئ موسا-

اوسار :(او-سار)اسم- واحد- مذکر- ترسېرے- تېرسرے- کورے- هغه تسمې چې د اس وغېره سر ته ور اچولے شي- د افسار مغفّن شکل- جمع اُوسارونه- (م- فارسی)-

اوسارول:(او-سا-ره-ؤل)مصدر متعدی- اس وغېره ته تېر سرے ورا چول- توسيرے کول- د خپل اثر لاندې راوستل- تابع کول- ابلول-

اوسارون:(او-سا-ره-ؤن)حاصل مصدر- وګورئ اوسارول-

اوسارونکے:(او-سا-ره-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوسارونکی- مؤنث اوسارونکې- وګورئ اوسارول-

اوسارونګ:(او-سا-ره-ؤنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوسارول-

اوسارونه:(او-سا-ره-ؤ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوسارول-

اوسترے:(اوس-ترے)صفت- مذکر- وروستے- ويستاړے- اخری- مؤنث اوستری-

اوسريخ:(اوس-ريخ)صفت- مذکر- وروستے- روستاړے- وروستنے- روسترے- روستيال (دير)-

اوسری خور:(اوس-ری-خور)اسم- واحد- مؤنث- د مياشتې نوم- وروستی خور- جمادی الثانی-

اوسرے:(اُس-رے)صفت- د اوسترے مخفف- جمع اوسری-

اوسط:(او-سط)اسم صفت- واحد- مذکر- مينځومانه- په مينځ کښې- درميانه- (م- عربی)-

اوسکارل:(اُ۲وس-کا-رل)مصدر متعدی- سپی ته د حملې کولو ترغيب ورکول- سپے په حمله آماده کول- مسکارل- وګورئ وشکارل-

اوسکارلے:(اوس-کا-ره-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- د حملې له پاره تيار شوے سپے- جمع اوسکارلی- مؤنث اوسکارلې- وګورئ اوسکارل-

اوسکارن:(اوس-کا-رن)حاصل مصدر- وګورئ اوسکارل-

اوسکارنګ:(اوس-کا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوسکارل-

اوسکارنه:(اوس-کا-ره-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوسکارل-

اوسکارونکے:(اوس-کا-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوسکارونکی- مؤنث اوسکارونکې- وګورئ اوسکارل-

اوسن:(او-سن)متعلق فعل- اوسنے (افغانستان)-

اوسنے:(او-سه-نے)متعلق فعل- د اوس وخت- موجوده- دستی-

اوسول:(او-سه-ول)مصدر متعدی- (۱)وسول- آبادول- مېشته کول- (۲)پنډول-

اوسولے:(او-سه-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوسولی- مؤنث اوسولې- وګورئ اوسول-

اوسون:(او-سه-ون)حاصل مصدر- وګورئ اوسول-

اوسون:(او-سون)اسم- واحد- مذکر- د نظر کونه- بد نظر-

اوسون:(او-سون)اسم- واحد- مذکر- حوصله- مزاج- د برداشت او زغم قوّت-

اوسون خطا:(او-سون-خه-طا)اسم صفت- بې حوصلې- وارخطا- پرېشانه-

اوسونګ:(او-سه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اوسول-

اوسونه:(او-سه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوسول-

اوسونکے:(او-سه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوسونکی- مؤنث اوسونکې- وګورئ اوسول-

اوسپچی:(او-سپ-چی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د اوسی بنګړے- د اوسی مېشتے- د اوسی بېدی- کيټی- (۲)د اوسی آواز-

اوسېدل:(او-سې-دل)مصدر لازم- ژوند تېرول- ډېره کېدل- استېدل- استوګے کېدل- مېشته کېدل- وسېدل-

اوسېدلے:(او-سې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوسېدلی- مؤنث اوسېدلې- وګورئ اوسېدل-

اوسېدن:(او-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ اوسېدل-

اوسېدنګ:(او-سې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوسېدل-

اوسېدنه:(او-سې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوسېدل-

اوسېدونکے:(او-سې-دون-کے)اسم فاعل- جمع اوسېدونکی- مؤنث اوسېدونکې- وګورئ اوسېدل-

اوسېده:(او-سې-ده)حاصل مصدر- وګورئ اوسېدل-

اوسېلل:(او-سې-لل)مصدر متعدی- اسويلی کول- سيلوی کول- افسوس کول-

اوسېللے:(او-سې-له-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوسېللی- مؤنث اوسېللې- وګورئ اوسېلل-

اوسېلن:(او-سې-لن)حاصل مصدر- وګورئ اوسېلل-

اوسېلنګ:(او-سې-لنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوسېلل-

اوسېلنه:(او-سې-له-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوسېلل-

اوسېلونکے:(او-سې-لون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوسېلونکی- مؤنث اوسېلونکې- وګورئ اوسېلل-

اوسېله:(او-سې-له)حاصل مصدر- وګورئ اوسېلل-

اوسېلے:(او-سې-لے)اسم- واحد- مذکر- اسوېلے- آه- جمع اوسېلی-

اوسی:(او-سی)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګورئ هوسی- سائنسی نوم ګېزل (GAZELLE)-

اوش:(اُوش)حرف تاسف- (۱)د افسوس کلمه چې د څه ناګوارې حادثې په وخت وئيلے شي- اف- افسوس- (۲- اسم صوت)سپی ته د حملې کولو ترغيب-

اوش:(اوش)اسم صوت- د خر وغېره د ودرولو کلمه- اش- اوښ- هش-

اوشاره:(او-شا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اوښاره-

اوشر :(اُو-شر)اسم صفت- واحد- مذکر- دربان- د دروازې څوکيدار- (ش- حشری- هندی)-

اوش کش کش:(اوش-کش-کش)صيغه امر- توکارنه- کشکارنه- سپے سوکونه- سپے چا پسې کونه يا تو کونه- سپے اچيش کونه- سپے کيش کيش کونه-

اوشنل:(اوش-نل)مصدر- وګورئ اوشنل-

اوشنل:(اوش-نل)مصدر- ورېشل- وشېخل- پشم ورې تونپې تونپې کول-

شخل- شندل- تارتارکول-

اوشنلے:(اوش-نهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوشنلی- مؤنث اوشنلې- وګورئ اوشنل-

اوشنن:(اوش-نن)حاصل مصدر- وګورئ اوشنل-

اوشننګ:(اوش-ننګ)حاصل مصدر- وګورئ اوشنل-

اوشننه:(اوش-نهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوشنل-

اوشنونکے:(اوش-نون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوشنونکی- مؤنث اوشنونکې- وګورئ اوشنل-

اوشه:(او-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)باغی پودینه- (۲)یو قسم بوټے چې خناورې خوری- نباتاتی نوم مینتهایستیوا- جمع اوشی-

اوشین:(او-شین)اسم- نظم- نسق-

اوشپرونګ:(او-شپ-ره-ونګ)اسم- واحد- مذکر- کوړ- کینې- کاژبل- شبرونډ- یو ماتوونکے خناور-

اوشے:(او-شے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې څاروی یې خوری-

اوښ:(اُوښ)اسم- واحد- مذکر- دَ ایشیا او دَ افریقې یو لوړ قامتے خناور چې پهٔ شا یو یا دوه کُبونه لری او دَ سورلۍ او باربردارۍ لهٔ پاره پکاریږی- غوښه یې هم خوړلے شی- جمع اُوښان- مؤنث اُوښه-

اوښاره:(او-ښا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اوښکی- یو قسم مُلخ چې دَ نورو مُلخانو پهٔ مقابله کښې لوئې قد لری- اوشاره- (۲)دَ مار یو قسم- وګورئ دَ اوښکې دویمه معنٰی- جمع اوښارې-

اوښبانهٔ:(اُوښ-با-نهٔ)اسم- جمع- مذکر- ساروان- دَ اوښبون جمع-

اوښبنه:(اوښ-به-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اوښبون مؤنث- وګورئ اوښبون-

اوښبون:(اُوښ-بُون)اسم- واحد- مذکر- هغه سړے چې اُوښان پیائی یا اوښان ساتی- ساروان- اوښبه- جمع اوښبانهٔ- مؤنث اوښبنه- جمع مؤنث اوښبنې-

اوښبه:(اوښ-به)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اوښبون-

اوښتل:(اَ-وښ-تل)مصدر- دَ معنو دَ پاره وګورئ اوړېدل-

اوښتلے:(اَ-وښ-تهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ اوښتل-

اوښتن:(اَ-وښ-تن)حاصل مصدر- وګورئ اوښتل-

اوښتنګ:(اَ-وښ-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوښتل-

اوښتنه:(اَ-وښ-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوښتل-

اوښتونکے:(اَ-وښ-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوښتونکی- مؤنث اوښتونکې- وګورئ اوښتل-

اوښتے:(اَ-وښ-تے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوښتی- مؤنث اوښتې- وګورئ اوښتل-

اوښ غلانخه:(اُوښ-غ-لان-خه)اسم- واحد- مؤنث- شین ګلے- یو شین ګل لرونکے بوټے چې دَ غنمو پهٔ پټی کښې پیدا کیږی-

اوښکنے:(اُوښ-که-نے)اسم- واحد- مذکر- کله خار- یو قسم بوټے-

اوښکه:(اُوښ-که)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اوښه- جمع اوښکې-

اوښکې:(اوښ-کې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وګورئ اوښاره- (۲)دَ اُبو چینجے- ریژه- بشکه- یو قسم ځمځ ... ی دَ مار پهٔ شان ښکاری-

اوښکے:(اوښ-کے)اسم- واحد- مذکر- یو ... رے او وړوکے مار چې دَ پلوڅو پهٔ څانګو پورې نښتے و... چې اُوښ څانګې ته خُله واچوی نو دے یې چیچی- جمع اوښکی-

اوښلن:(اُوښ-لن)صفت- واحد- مذکر- اوښیو سره متعلق- لهٔ اوښیو پکے- مؤنث اوښلنه- جمع اوښلنی-

اوښ مرغے:(اُوښ-مر-غے)اسم- واحد- مذکر- اوښ ملغے- یو بوټے چې دَ قندهار پهٔ ریګستان کښې پیدا کیږی او دَ لرګی نه یې کوبله یا سکارهٔ جوړیږی- جمع اوښ مرغی-

اوښ ملغے:(اُوښ-مل-غے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اوښ مرغے- جمع اوښ ملغی-

اوښه:(اُو-ښه)اسم- واحد- مؤنث- اوښکه- لهٔ سترګو خارجېدونکې مانع څاڅکے چې دَ ژړا یا خوشحالۍ پهٔ وخت را اوځی- جمع اوښې- (۲)دَ اُوښ مؤنث- جمع اوښې-

اوښېمه:(او-ښې-مه)اسم صفت- واحد- مؤنث- هغه اُوښه چې وارې راوړے وی- جمع اوښېمې-

اوښی:(او-ښی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اوښکې/اوښاره-

اوښے:(اُو-ښے)اسم- واحد- مذکر- یو غرنیز بوټے چې دَ اُوښ دَ زخم پهٔ کار راځی- جمع اوښی-

اوښے:(اُو-ښے)اسم- واحد- مذکر- و ګورئ اخښے- جمع اوښی-

اوصاف:(اَو-صاف)اسم- جمع- مذکر- دَ وصف جمع- وصفونه- صفتونه- ستائینې- (عربی)-

اوغز:(او-غز)اسم- واحد- مذکر- اکوړ- غز- کروټ- اغز- جمع اوغزونه- نباتاتی نوم جګ لانس ریجیه (JUGLANS REGIA)-

اوغم:(او-غم)اسم- واحد- مذکر- کبر- لوئی- بډائی- فخر- ویاړ-

اوغه:(او-غه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بنیادم دَ ګېډی یا خېټې لوئې چینجے- جمع اوغې-

اوقات:(او-قات)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ وقت جمع- وختونه- ساعتونه- ګړی- (۲)مالی یا معاشرتی حیثیّت- (م- عربی)-

اوقاف:(او-قاف)اسم- جمع- مذکر- دَ خیراتی مقصد دَ پاره خاص شوی ځیزونه یا جائیدادونه او دَ هغوئ دَ انتظام محکمه- واحد وقف- (م- عربی)-

اوقه:(او-قه)اسم- باقی/باکی- اُلتی- کوزکاتهٔ- مروقے- ګرځون- قے- اکې-

اوقیه:(او-قی-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غلې اندازه کولو یوه پیمانه-

اوک:(اوک)اسم صفت- وګورئ اوکا-

اوک:(اوک)صفت- واحد- مذکر- (۱)نیغ- (۲)دوک- (۳)سم- (۴)سیخ-

اوکا:(او-کا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)واک- (۲)اجازه- جمع اوکې-

زبر"(ځ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ۀ"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-ښې-دۀ)

اوکا:(اُو-کا)اسم صفت- (۱)ډېر موړ- (۲)دَ ستومانۍ یا ډېر خوراک لهٔ کبله
بې خانه- بې خوله- بې سوله-
اوکاښه:(او-کا-ښه)اسم- واحد- مؤنث- ګونده- تړنګې- کښنده- کورے-
کمبو- ګوینده- جمع اوکاښې-
اوک پوک:(اوکَ-پوکَ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ډېر غټ- (۲)بې پوله
پړسېدلے- دَ هوا نه ډک- (هوک- پوک)-
اوکر:(او-کر)اسم- جمع- مذکر- (۱)اکر- (۲)دَ مخ اَثار- دَ څهرې علامې-
اوکر:(اُو-کر)اسم- جمع- مذکر- لګر- کر- کنکړ- کنګړ- کامپور- دَ څاروی
دَ خوراک نه پاتې وابښهٔ- پار- چوړ- ټانکر- ټانګر-
اوکرائی:(اوکَ-را-ئي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اخور- هغه ځائې چې مال ته
پکښې دَ خوړلو دَ پاره وابښهٔ بُوس یا داسې نور څیزونه اچولے شي-
پمبے- تمبی- تومبی-
اوکړه:(او-کړهٔ)اسم- واحد- مؤنث- دَ رشتې قبلونه-
اوکشه:(او-که-شه)متعلق فعل/صفت- تل- همیشه-هروخت- هرمالې- هر ساعت-
اوکښه:(او-که-ښه)اسم- واحد- مؤنث-هغو وړوکے لوښے چې پکښې دَ پیالی
دَ کنکالولو نه پس هغه چائې اچولے شي چې پیالۍ پرې کنګال شوې وي-
جمع اوکښې- (م- فارسی- آب کش)-
اوکلی:(اوکَ-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه غُټ پوغل چې پهٔ هغې اُربشې
یا شولې ټکوی- بغری- (ش- هندی- اوکهلی)-
اوکم:(او-کم)اسم- واحد- مذکر- حاکم- (عامیانه)-
اوکوب:(او-کوبَ)اسم صفت- لونی- سترتوب- وَس- واک- طاقت-
اوکه:(اُو-که)صفت/متعلق فعل- (۱)دَ سوکا ضد- (۲)تکلیف کښې- (۳)ګران-
پهٔ سخته- پهٔ زحمت- پهٔ خواری- (ش- هندی- اوکها)-
اُوکے:(او-کے)مخفف- (۱)هو- ټیک ده- وو- ښه- آ- دَ "نهٔ" ضد-
(م- انګریزی)-
اوکی:(او-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چیلم- حقه- (ش- هندی- فارسی)-
اوکے:(او-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښاروانی- پایوازی- پښې خلاصے-
پښې ارته- دَ کوژدنې نه پس یو رسم- (۲)کوژده- کوژدن- نیوکه- جمع
اوکی-
او کار:(او-کارَ)اسم صفت- واحد- مذکر-(۱)خفه- ناراض- پرېشان- غم
لړلے- (۲)اخته- مصروف- لګیا- پهٔ کار بوخت- (۳)زخمی- اګار- مؤنث
اوکاره- (م- فارسی)-
اوکارول:(او-کا-ره-وَل)مصدر متعدی- دَ چا طبیعت خټه کول- خوَ تنګ
تربت کول- پرېشانه کول- تربتول-
اوکارولے:(او-کا-ره-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوکارولی- مؤنث
اوکارولې- وګورئ اوکارول-
اوکارون:(او-کا-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ اوکارول-
اوکارونکے:(او-کا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوکارونکی-
مؤنث اوکارونکې- وګورئ اوکارول-
اوکارونګ:(او-کا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ اوکارول-
اوکارونه:(او-کا-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوکارول-
اوکاره:(او-کا-ره)اسم صفت- تنګ- تربت- پرېشانه- اوکار- (م- فارسی-
انګار)-
اوکارېدل:(او-کا-رې-دَل)مصدر لازم- دَ چا طبیعت خټه کېدل- خوَ تنګ
تربت کېدل- پرېشانه کېدل- تربتېدل- زهیرېدل-
اوکارېدلے:(او-کا-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوکارېدلی-
مؤنث اوکارېدلې- وګورئ اوکارېدل-
اوکارېدن:(او-کا-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ اوکارېدل-
اوکارېدنګ:(او-کا-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوکارېدل-
اوکارېدنه:(او-کا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوکارېدل-
اوکارېدونکے:(او-کا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع
اوکارېدونکی- مؤنث اوکارېدونکې- وګورئ اوکارېدل-
اوکارېدهٔ:(او-کا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ اوکارېدل-
اوګرانی:(اوګَ-را-ني)اسم- واحد- مؤنث- قسط- دَ مقرر رقم وصولی- دَ هغه
تجارتی قرض وصولی چې پهٔ قسطُونو کښې وي- (ش- هندی)-
اوګرل:(اوګَ-رَل)مصدر- پهٔ زړهٔ کښې چا ته خبره کلکه نیول-
اوګرلے:(اوګَ-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوګرلی- مؤنث اوګرلې-
وګورئ اوګرل-
اوګرن:(اوګَ-رَن)حاصل مصدر- وګورئ اوګرل-
اوګرنګ:(اوګَ-رَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوګرل-
اوګرونکے:(اوګَ-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوګرونکی- مؤنث
اوګرونکې- وګورئ اوګرل-
اوګره:(اوګَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وریژې یا بتې پهٔ اُبو کښې یشونه- دَ
وریژو یا بتو اتوب- دَ پښتنو دَ څنو قبیلو یو مخصوص خوراک چې دَ
وریژو نه ئې پخوی- (۲)معمولی او بې مزې خوراک- (م- هندی)-
اوګره ټینکے:(اوګَ-ره-ټینګ-کے)اسم- واحد- مذکر- ګل بخور- عاقرقرحا-
اکرکره- یو بوټے دے چې دَ قوت باه دَ پاره پکاریږی، چې ورته ګلنجور
هم وائی- جمع اوګره ټینکی-
اوګړول:(اوګَ-ړه-وَل)مصدر- خاربښتول- مښل-
اوګړولے:(اوګَ-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع اوګړولی- مؤنث
اوګړولې- وګورئ اوګړول-
اوګړون:(اوګَ-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ اوګړول-
اوګړونکے:(اوګَ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع اوګړونکی- مؤنث
اوګړونکې- وګورئ اوګړول-
اوګړونګ:(اوګَ-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ اوګړول-
اوګړونه:(اوګَ-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ اوګړول-

بانه:(با-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وجه- (۲)دَ دروغو عذر- (۳)پلمه (متروک)-

بانه کر:(با-نه-کَر)اسم صفت- واحد- مذکر- حیله سازونکے- مکرژن- پهٔ کار کښې لېت و لعل کونکے- جمع بانې کران- بانېکر- بانه کرے-

بانه کرے:(با-نه-کَهٔ-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بانېکر-

بانی:(با-نی)اسم صفت- واحد- مذکر- بنیاد اېښونکے- شروع کونکے- تیره اېښونکے- جوړونکے- جمع بانیان- (م- عربی)-

بانین:(با-نین)اسم- مذکر- دَ باز دَ کورنۍ یو مارغهٔ- شاهین-

بانې باز:(با-نې-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بانېکر-

بانېدل:(با-نې-دَل)مصدر لازم- دَ زخم اَبهٔ کول- خلهٔ کول- اَبهٔ پټول- پهٔ څهٔ زخم کښې زوې او نوُ کېدل-

بانېدلے:(با-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع بانېدلی- مؤنث بانېدلې- وګورئ بانېدل-

بانېدن:(با-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ بانېدل-

بانېدنګ:(با-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ بانېدل-

بانېدنه:(با-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بانېدل-

بانېدونکے:(با-نې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بانېدونکی- مؤنث بانېدونکې- وګورئ بانېدل-

بانېدهٔ:(با-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ بانېدل-

بانېکر:(با-نې-کَر)اسم صفت- واحد- مذکر- بانه جوړونکے- حیله حواله کونکے- دروغژن- بانه کر- بانېکرکے- خووب کَر- (وزیر)-

بانېکرکے:(با-نې-کَر-کے)اسم تصغیر- وګورئ بانېکر-

باڼ:(باڼ)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)بڼوڼ- (۲)دَ منجو یا مزری غښتے نرے پرے- بان- (۳)دَ خرمانی پاڼې-

باڼ جڼ:(باڼ-جڼ)اسم- واحد- مذکر- بانجیان- تور باټینګڼ-

بانس:(با-نس)اسم- واحد- مذکر- سخت او مضبوط لرګے لرونکی یوه وُنه چې اکثر پهٔ خېمو جوړولو کښې پکارولے شي-

بانک:(با-نک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بانو-

باڼ کتاڼ:(باڼ-کهٔ-تاڼ)اسم- جمع- مذکر- لوښی لرګی-

بانکه:(با-نه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بانکه- جمع بانکې-

باڼکه:(باڼ-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم شین رنګے چینجے چې اکثر دَ ببرو پهٔ پاڼو وی-

بانو:(با-نو)اسم- واحد- مذکر- بانهٔ (افغانستان)-جمع بانوګان-

بانوکه:(با-نو-که)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- مست او پهٔ نشه کښې مدهوشه-

بانه:(با-نه)اسم- واحد- مؤنث- تارګه- شپول-

بانهٔ:(با-نهٔ)اسم- واحد/جمع- مذکر- برڼهٔ- دَ سترګو دَ ښېزمو پهٔ غاړه پهٔ یوهٔ قطار ولاړ یو یا ډېر وېښتهٔ-

بانېچغ:(با-نې-چغ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ باړی چغ-

بانیے:(با-نیے)اسم- واحد- مذکر- هغه اله چې دَ خرمنې نه پرې رسی غړلے یا جوړلے شي-

باو:(باو)اسم- واحد- مذکر- اتشک- یو متعدی جنسی مرض-

باوبلا:(باو-بَ-لا)اسم- واحد- مؤنث- دهشتناک او ویروونکے څیز- بلا- باګره-

باوجود:(با-وُ-جود)حرف جار- (۱)سره دَ دې- (۲)بیا هم- (۳)پهٔ دې هم- (۴)لا دَ پاسه- (۵)دَ دې پاسه- (م- فارسی/عربی)-

باور:(با-وَر)اسم- واحد- مذکر- یقین- اعتماد- تسلی- ویسا- اعتبار- (م- فارسی)-

باورچنه:(با-وَر-چهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- اخلے پخلے کونکې ښځه- دَ باورچی تانیث- جمع باورچنې-

باورچی:(با-وَر-چی)اسم- واحد- مذکر- (۱)پخونکے- اخلے پخلے کونکے- اشپز- روټی پخونکے- خانساماه- (۲)قاصد- (۲صفت)باوری- معتمد- جمع باورچیان-

باورچی خانه:(با-ور-چی-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اخلی پخلی ځائ-

باوردی:(با-وَر-دی)اسم- واحد- مذکر- پهٔ وردی کښې- پهٔ وربښی کښې- دَ سرکاری فرائضو دَ ادا کولو دَ پاره تیار- (م- فارسی/هندی)-

باوری:(با-وَ-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- اعتباری- قابل اعتماد- پهٔ لېن دېن کښې ښهٔ- امین- معتمد- زړور- دلاور- جمع باوریان-

باوړی:(باوَ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کوهے چې پوړی ورته کوزې شوې وی- باولی- (هندی)-

باوړے:(باو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وَچت اوار ځائ- لوړه سطح- (افغانستان)-

باوسیر:(با-وَ-سیر)اسم- جمع- مذکر- وګورئ بواسیر-

باولل:(با-وَ-لل)مصدر- ښکاری مارغانو یا ښکاری سپو ته دَ ښکار نیولو چل ښول- ښکاری مارغان دَ ښکار پهٔ نیولو عادت کول- باولے ورکول- (م- فارسی)-

باوللے:(با-وَ-لهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- پهٔ ښکار عادت شوے- اموښته کړے شوے- مؤنث باوللې- جمع باوللی-

باولنه:(با-وَ-لهٔ-نه)حاصل مصدر- پهٔ ښکار عادت کونه او تربیت ورکونه- په ښکار بلدونه- اموخته کونه-

باولونکے:(با-وَ-لون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- هغه څوک چې باز، باښه او سپی پهٔ ښکار کولو اموخته کوی-

باوله:(باوَ-له)اسم صفت- اوتر- ساده بې مکره- احمق- کم عقله- ناپوهٔ- هغه سړے چې هېڅ غم نهٔ کوی- اوتر بوتر- ساده باده- شوده بوده- بوله- (م- هندی- بهولا)-

باولی ورکول:(باو-لی-ور-کول)مصنوعی مصدر- (۱)خواړهٔ ورکول- (۲)نارے ورکول-

باولی:(باو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ باز دَ بچی پهٔ ښکار دَ عادتولو دَ پاره پرکټ کړے مارغهٔ- (م- فارسی)-

باولی:(باو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ باوړی-

باولے:(باو-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- لاپو- دَ مراني ږوږي ويشتونکے- جمع باولی- مؤنث باولی-

باوی:(با-وی)اسم- واحد- مؤنث-دَ زنانو دَ کار ټوکری- عام طور سره هغه ټوکرئی چې پکښې دَ وريښلو دَ پاره مالوچ ايښوے شی- (م- فارسی- باوين)-

باويسر:(با-وی-سر)اسم- جمع- مذکر- وګورئ بواسير- (م- عربی)-

باويسير:(با-وی-سير)اسم- جمع- مذکر- وګورئ بواسير-

باوېړے:(با-وې-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ ښهٔ کېدونکی رنځ بېرته راتلنه- دَ مرض را ګرځېدنه-

باه:(باه)اسم- واحد/جمع- مذکر- شهوت- جماع- غو- مردانه طاقت- (م- عربی)-

باهر:(با-هر)حرف جار/صفت- بهر- بار- ښکاره- اوڅار- څرګند- خارج- جُدا- (م-عربی)-

باهرخېلی:(با-هر-خې-لی)اسم صفت- واحد- مؤنث- بې پردې ښځه- بې ستره ښځه- ګشتې- هر دری- مذکر- باهرخېلے-

باهم:(با-هم)متعلق فعل- پهٔ خپلو کښې- يو تر بله-

باهمی:(با-هه-می)صفت- يو تر بله سره متعلق-

باهو:(با-هو)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ زنانو يو پسول چې دَ مړوند نه دَ لېچې تر منځه وُرد وی- کنګڼ- باوو- کړه- (۲)مټ- کوټک- لويه ړنړه-

بائی:(با-ئی)اسم- واحد- مذکر- (۱)سېټ- دَ سيکانو مذهبی مشر- (۲)طنزاً دَ ناپوهه دَ پاره- (۳)ورور- (۴)همخولی ته دَ مخاطبې پهٔ توګه پکارولے شی- (م- هندی- بهائی)-

بائی بند:(با-ئی-بند)اسم- واحد- مذکر- دَ يو قوم، مذهب، وطن، کلی سره تعلق لرلو کښې يو بل سره شريک- جمع بائی بندان-

بائی بندی:(با-ئی-بن-دی)اسم- واحد- مؤنث- دَ بائی بندانو باهمی تعلق-

بايچه:(بايْ-چه)اسم- جمع- مؤنث- دَ برص دَ مرض دوائی- جمع بايچې-

بايد:(با-يد)متعلق فعل- مضارع دَ بائستن مصدر نه- (۱)پکارده- لازمه ده- ضرورى ده- خامخا- ضرور- بائيده وی- مناسب وی- (۲)مناسب- پکار- پهٔ ځایْ- اخلاقاً- مصلحتاً- مذهباً- رسماً- (م- فارسی)-

بايده:(بائ-ده)متعلق فعل- وګورئ بايد-

بايسکوپ:(با-يس-کوپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه عمارت چې پکښې متحرک تصويرونه ښئيلے شی- سنيما- (۲)متحرک تصويرونه- (م- انګريزی)-

بائيسېکل:(با-ئی-سې-کل)اسم- واحد- مذکر- دَ دوؤ پايو يوه سورلی چې پائې ې يو بل پسې وی او دَ پېډلونو پهٔ ذريعه چلولے شی- (م- انګريزی)-

بائسکوپ:(با-ئی-سکوپ)اسم- سنيما- دَ فلم دَ ښودلو ځایْ- (م- انګريزی)-

بايکاټ:(با-ئی-کاټ)اسم- واحد- مذکر- دَ تعلق پرېښوهٔ- ښهٔ بده پرېښوهٔ- دَ غم ښادی نه خارجېدهٔ- انکاری کېدهٔ- قطع تعلق- (م- انګريزی)-

بائيکر:(بائ-کر)اسم- واحد- مذکر- بانيکړ- بيکړ- بېکڼ- پلې وُنه- بزه- پلمن- پلين- پليته- پلوان- پلېمن- پلېمه- يوه تريخ خوند لرونکی ونه چې دَ جرړو او ښاخونو ځنې ې مسواکونه جوړيږی- سپين ګل کوی چې ورته پولی وائی- نباتاتی نوم ابډهاټوډاويسيکا-

بائيکړ:(بائ-کړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بائيکر-

بای لوې:(بائ-لهٔ-وې)فعل- بائلل- مصدر- (۱)بائېللی- (۲)تاوان کړی-

بائيوالی:(با-ئی-وا-لی)اسم- واحد- مؤنث- تجارت کښې شريک والی- پهٔ کاروبار کښې ملګرتيا-

بایْ:(بایْ)اسم مفعول- بائېللے-

بائېسر:(بایْ-سر)اسم- جمع- مذکر- وګورئ بواسير-

بابسير:(بایْ-سير)اسم- جمع- مذکر- وګورئ بواسير-

بائېلات:(بائ-لات)اسم- (۱)بائېلنه- بېلنه- تاوان- زيان- ماتې خوړنه- (۲)پړکېدنه- خړکېدنه- ملامت کېدنه-

بائېلل:(بائ-لل)مصدر متعدی- ناکامیابېدل- ناکامیابه کېدل- ماتې خوړل- تاوانول- زيانول- دَ ګټل ضد-

بائېللے:(بائ-لهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع بائېللی- مؤنث بائېللې- وګورئ بائېلل-

بائېلن:(بائی-لن)حاصل مصدر- وګورئ بائېلل-

بائېلنګ:(بائی-لنګ)حاصل مصدر- وګورئ بائېلل-

بائېلنه:(بائی-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بائېلل-

بائېلودل:(بایْ-لو-دل)مصدر- عاميانه تورے- وګورئ بائېلل-

بائېلودلے:(بایْ-لو-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع بائېلودلی- مؤنث بائېلودلې- وګورئ بائېلل-

بائېلودن:(بائی-لو-دن)حاصل مصدر- وګورئ بائېلل-

بائېلودنګ:(بائی-لو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ بائېلل-

بائېلودنه:(بائی-لو-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بائېلل-

بائېلودونکے:(بائی-لو-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بائېلودونکی- مؤنث بائېلودونکې-- وګورئ بائېلل-

بائېلودهٔ:(بائی-لو-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ بائېلل-

بائے:(با-ئے)اسم- بائېلنه- بائېلات- بائېلودنه-

بب:(بب)صفت- دَ ببر مخفف (غالباً) کڼ وېښتهٔ لرونکے- کڼ وېښتهٔ-

مؤنث ببه-

ببر :(بَ-بَر)اسم- واحد- مذکر- د زمری یو قسم چې په ځټ ې کڼ وېښتهٔ وی- جمع ببران-

ببر :(بَ-بَر)صفت- (۱)هغه سړے چې د سر وېښتهٔ ې وُږدهٔ او کڼ وی- (۲)قهر ژن- (۳)کڼ- ګور- (۴)د ږيرو وړو وېښتو او پاڼو لرونکے- (۵)ناهموار- (۶)اتک مټک- (دېو معنو کښې اسم)-

ببرږيرے:(به-بَر-ږی-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- دُ لوئيې او بې ترتيبه ږيرې لرونکے- جمع ببرږيرې-

ببرستنے:(به-بَر-سَتهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- د انګريزی ټوپکو يو قسم- جمع ببرستنی-

ببرسرے:(به-بَر-سَ-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- دُ سر د خوږو وړو وېښتو لرونکے- سرببرے- پرېشانه حال- ګډوډ- مؤنث ببرسرې- جمع ببرسرې-

ببرسړے:(به-بَر-سُ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- شاه زلمے- تکړه سړے- زيوسړے-

ببرغوږے:(بَ-بَر-غوه-ږے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه څوک چې په غوږونو ې لوئې وېښتهٔ وی- (۲- اسم)غوږمن ټوپک- يوولس بزے ټوپک- تری ناټ تری- (۳)کېلبر- جمع ببرغوږی-

ببرک:(بَب-رَک)اسم- واحد- مذکر- يو پشم داره مشهوره کپړه-

ببرو :(بب-رَو)اسم صفت- واحد- مذکر- بدرنګ سړے- دُ تريو تندی خاوند- دُ خوږندو شونډو او ببرو وروځو خاوند- دُتورې ټنډې څښتن- جمع ببروګان-

ببروزه:(بَب-رو-زه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم واښهٔ- جمع ببروزې-

ببرول:(به-بهٔ-رَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)پارول- خورول- غصه وروستل- راپارول- (۲)وېښتهٔ ګډوډ کول- وېښتهٔ نېغ ودرول- وېښتهٔ خورول-

ببرولے:(به-بهٔ-رَ-وَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ببرولی- مؤنث ببرولې- وګورئ ببرول-

ببرون:(به-بهٔ-رَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ببرول-

ببرونکے:(به-بهٔ-رَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ببرونکی- مؤنث ببرونکې- وګورئ ببرول-

ببرونګ:(به-بهٔ-رَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ببرول-

ببرونه:(به-بهٔ-رَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ببرول-

ببره:(ب-بهٔ-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- دُ ببر مؤنث- سرکشه-

ببرېدل:(به-بهٔ-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)د وېښتو خورېدل- وېښتهٔ خوارهٔ وارهٔ کېدل- (۲)غصه کېدل- د وېښتو نېغ ودرېدل- سوخت اخستل-

ببرېدلے:(به-بهٔ-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ببرېدلی- مؤنث ببرېدلې- وګورئ ببرېدل-

ببرېدن:(به-بهٔ-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ببرېدل-

ببرېدنګ:(به-بهٔ-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ببرېدل-

ببرېدنه:(به-بهٔ-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ببرېدل-

ببرېدونکے:(به-بهٔ-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ببرېدونکی- مؤنث ببرېدونکې- وګورئ ببرېدل-

ببرېدهٔ:(به-بهٔ-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دُ ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ ببرېدل-

ببرے:(به-بهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- د ښکاری سپو يو قسم چې ډېر کڼ وېښتهٔ ې وی- جمع ببری-

ببرے:(بَب-رے)اسم- واحد- مذکر- کشمالو- بوبرے- رېحان- کشمالے- نيازبو- جمع ببری-

بب ږيرے:(بَب-ږی-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې ږيره ې ګڼه وی- ببرږيرے- جمع بب ږيری-

ببغکے:(بَب-غهٔ-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوار- مانده- کمزورے- په بد حال- ببغے- جمع ببغکی-

ببغه:(بَ-بهٔ-غه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ببوغه- جمع ببغې-

ببغے:(به-بهٔ-غے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غريب- خوار- مفلس- بې وسه- ناداره- بد مرغه- (۲- اسم)کوکوشتو-

ببو :(بَه-بو)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بلا- شېخی- باخو- دُ ماشومانو د يرولو د پاره دا کلمه استعماليږی- (۲- صفت)ښځونک- (۳)دُ مور يا پلار خور يا مشرې ښځې ته دُ خطاب تورے-

ببوتتے:(به-بو-تهٔ-تے)اسم- واحد- مذکر- مُلا چرګک- مُلاچرچک- ببوکے- ببښکے- ګډی چرګ- ببو تنکے-

ببوتنکے:(به-بو-تن-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ببوتتے-

ببوزے:(به-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دُ لاس پکے- باد پکے- پرپرکے- (۲)مامی خورک- يوه مرغی چې د سيند په غاړه کبان نيسی- (۳)باببزے- قرآن پاڼه- تاروکے کوکی- جمع ببوزی-

ببوزے:(بَ-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- دُ کبينهٔ زړے- وګورئ پيانځه کښې دوېمه معنٰی-

ببوغه:(بَ-بو-غه)اسم- واحد- مؤنث- کور کوړه- کورکوړی- کونتره- کوکوشتکه- ککوښه- پړاپه- ببغه- بابغه- کرکړه- خره کوتره- جمع ببوغې-

ببوکے:(بَ-بو-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ببوتتے-

بببزنه:(به-ببز-نه)اسم- واحد- مؤنث- سره توده تبه- شېبره تبه- لړزه تبه- وګورئ ببېژنه-

ببېژن:(بَ-بې-ژَن)اسم صفت- يخنی نيولے- دُ ملېريا د مريض لړزېدنه-

ببېژنه:(بَ-بې-ژهٔ-نه)حاصلِ مصدر- رپېدنه- لهٔ غصې، تبې يا وېرې لهٔ زجې رپېدنه-

ببېشه:(ب-بې-شه)اسم- د ږېرو خبرو عادت-

ببېښے:(بَ-بې-ښے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دُ بواسيرو مرض- (۲)دُ ملکانو

سره دَ بد فعلۍ عادت- (۲)هغه سړے چې دَ بواسیر پهٔ مرض ناجوړه وی-
(۴)موښنی- جمع ببېښی-

ببې:(بَ-بې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مشرۍ خور، ترور یا بلې مشرې ښځې ته دَ احترام تورے- بوډۍ ښځې ته دَ احترام کلمه-

ببۍ:(بَ-بۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کوکی- بوسه- (۲)یو خوشبودار بوټے او دَ هغې تُخم- (۳) ښارونی-

ببے:(به-بے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مارغهٔ چې چینجی خوری-

بپار:(به-پار)اسم- واحد- مذکر- (۱)تجارت- (۲)سوداګری- (۳)پېرل پلورل- (۴)وپار- لاګ- (م- هندی- بیوپار)-

بپاری:(به-پا-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- بیوپاری- وپاری- لاګی- تاجر- سوداګر- جمع بپاریان-

بت:(بَت)اسم- واحد- مذکر- طاقت- قوت- کټ- پربکړه-

بت:(بَت)اسم- واحد- مذکر- وګوری بطه-

بت:(بَت)اسم- واحد- مذکر- کاړی- دَ اوړو او خوږ شربت ګړوبے-

بت:(بت)اسم- واحد- مذکر- (۱)لښتے- خوړ- (۲)دَ کاڼو دېوال-

بت:(بُت)اسم- واحد- مذکر- دَ یشپدلو وریژو اُبهٔ یا سرسرے- دَ نشاستې نه جوړ هغه اړوبے چې سوتی کپړوته ئې پهٔ دې غرض ورکوی چې تهه ئې ماته نهٔ شی-

بت:(بت)اسم- واحد- مذکر- کتے-

بُت:(بُت)اسم- واحد- مذکر- (۱)لهٔ لرګی، کاڼی، اُسپنې یا بل داسې څیز نه جوړ دَ انسان یا حیوان شکل- (۲)تصویر- (۳)چپ چاپ- (۴)محبوب (شاعری)- پهٔ دریمه معنی کښې صفت- جمع بتان- (م- فارسی)-

بتار:(به-تار)اسم- واحد- مذکر- دَ جولاګانو دُ کار یو دَ ړومنځې پهٔ شان آله چې تارونه پرې بیلولے شی-

بتاره:(به-تا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ پهلوانی جنګی وسله- ګُرز- جمع بتارې-

بتاسه:(به-تا-سه)اسم- واحد- مؤنث- پتاسه- (م- ثبات- هندی)- جمع بتاسې-

بتاوار:(به-تا-وار)اسم- واحد- مذکر- راتلونکی وخت کښې- ګانده-

بت پرست:(بُت-پَه-رَست)اسم صفت- واجد- مذکر- دَ بُتانو پرستار- دَ بُتانو عبادت کونکے- مُشرک- بُوت پرست (عامیانه)-

بت پرستی:(بُت-پَه-رس-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ بُت عبادت کونه- (۲)عشق (شاعری)-

بت تراش:(بُت-ته-راش)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ بُتانو جوړونکے- بُت ساز- مصوّر-

بت خانه:(بُت-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځایُ چې بُتان پکښې ایښوے شوی وی- جمع بت خانې-

بتخک:(بَت-خَک)اسم- واحد- مذکر- بټېر- غزے- یو قسم خړ رنګے مارغهٔ چې پهٔ غنمو کښې پیدا کیږی او خنې خلق پرې دَ مرز ګومان کوی- جمع بتخکان- سائنسی نوم کوټرنکس (COTURNIX)-

بتر:(بَ-تَر)اسم صفت- واحد- مذکر- بدتر- خراب تراب- ډېر خراب- بېکاره- بې خونده- ډېر بد-

بتری:(بَ-تَ-ری)اسم- واحد- مؤنث- خرابی- بدتری- ابتری-

بت ساز:(بُت-ساز)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع بُت سازان- وګورئ بُت تراش-

بت سازی:(بُت-سا-زی)اسم- واحد- مؤنث- دَ بُتانو جوړولو کار-

بت شکن:(بُت-ش-کن)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- دَ بُتانو ماتونکے- مؤنث بُت شکنه- (م- فارسی)-

بتک:(به-تک)اسم- واحد- مذکر- دَ بط اسم تصغیر-

بتک:(بَ-تَک)اسم- واحد- مذکر- پهٔ سفر کښې دَ خان سره دَ اُبو وړلو یو مخصوص لوښے- یو قسم صراحی- پهٔ یو خاص طریقه جوړ کړے شوے دَ اُبو لوښے- جمع بتکونه/بتکی-

بتکده:(بُت-کَ-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ بُتانو دَ ایښودو ځایُ- (۲)بُت خانه-

بتکوړے:(به-ته-کُو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ بتې وړوکے بچے- جمع بتکوړی-

بتکه:(به-ته-که)اسم- واحد- مؤنث- ځنګلی بطه- جمع بتکې-

بتکه:(به-ته-که)اسم- واحد- مؤنث- بتکے- دَ اُبو لوښے- جمع بتکې-

بتکۍ:(بَت-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)پهٔ غوږونو کښې دَ اچولو یو پسول- (۲)دَ سرو زرو پونړ- (۳)کوړکی- ډېری- دَ زرکو او نورو مرغیو نیولو دَ پاره دَ لرګی تختې پهٔ یو ژُور ځایُ ږدی او دانې پرې اچوی او چې مرغۍ راشی نو دا تختې سره خلاصې شی، مرغۍ ښکته ولوېږی، تختې بېرته سره ونښلی- ډېری-

بتکے:(به-ته-کے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے بتک- دَ بتک اسم تصغیر-

بُتکے:(بُت-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وړوکے دېوال چې دَ پناهۍ دَ پاره ودلے شوے وی- (۲)وړوکے دېوال چې دَ ارهټ دَ کانجڼ سر پرې پروت وی- جمع بُتکی-

بتله:(به-ته-له)اسم- واحد- مؤنث- پتکه- هغه چرګه چې پهٔ وړومبی ځل پهٔ اګیو اچولو راغلې وی- جمع بتلې-

بتلۍ:(بَه-تهٔ-لۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ مرغانو نیولو یو خاص جال چې دَ ونو دَ نرو څانګو جوړ وی- لټ- یو قسم پړکه- بتکۍ- دَ زرکو دَ نیولو یو خاص دام-

بتوله:(بَ-تو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پهٔ ښکاری مارغهٔ باندې پهٔ توله ګوزار- (۲)دَ عادت کولو طریقه-

بتوه:(بت-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سارے- (۲)پټی کښې پوخ شوے پالک- (۳)قطف- نباتاتی نوم سپی نے سیا او لے رے سیا (یو قسم)-

(م- هندی- بهتوا)-

بته:(بَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم د ریښمو د ګنډلو کار- (۲)یو خاص قسم سکوړے- (۳)د کشیده کارۍ یو قسم-

بته:(به-ته)اسم صفت- بې غوښو- خوار- کمزورے- ړنګر- ضعیف- د چاق ضد-

بته:(به-ته)اسم- واحد- مؤنث- مشهور مارغۀ چې لویه غړانګه لرې او کورونو کښې ساتلے شي- د اناټانیډے د نسل هر مارغۀ چې د پنجو د ګتو تر منځه یې پرده وي او وړده مښوکه یې وي- سائنسي نوم (ANTER-INDICUS)

بتۍ:(بَ-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د جولاګانو د تنستې بټ- هغه نرم اوړۀ چې جولاګان يې تنستې ته ورکوي- (۲)هغه زمکه چې د قوت اخستلو د پاره دانسته لۀ کرلو پاتې کړے شوې وي- (۳)ناوادۀ کړے خلمے-

بتي:(بَ-تي)اسم صفت- پړ- ملامت-

بتۍ:(بَ-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- ژاولکۍ- سونک- حلوا- ملاټینګ- هغه ګړه چې پۀ غوړو کښې یشېدلې وي او د سرېدو نه پس خوړے شي- د پتیسې یو قسم- اتوب- لبټې-

بتۍ:(بَ-تۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ باتۍ-

بټ:(بَټ)اسم- واحد- مذکر- د ټوپک کُندۀ- کنداغ- جمع بټونه-

بټ:(بَټ)اسم صوت- سندا ته د کښېنولو اواز- جمع بټونه-

بټ:(بَټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د نینو وریتولو خاص د اُسپنې لوښے- (۲)د ښځتو پخولو بټۍ- (۳)تبۍ- تبغنه- تبخے- (۴)د یو خاص طرز جوړ نغرے چې ډېرۍ پرې پخولے شي- جمع بټونه-

بټا:(به-ټا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پۀ یوه سترګه ړوند- (۲)چې یوه سترګه کښې یې ګل وي-

بټارو:(بَ-ټا-رو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټاکۍ (ګوتمه)-

بټ ځوری:(بټ-ځو-رۍ)اسم- واحد/جمع- مذکر- نرۍ نرۍ دانې یا غټې-

بټ سترګے:(بټ-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- بټک- بټا- ټېغ سترګے- هغه سړے چې سترګې یې بوټې راوتلې وي- چغر- زېږ سترګے- ټغ سترګے- جمع بټ سترګي- مؤنث بټ سترګې-

بټ سوره:(بټ-سو-ره)اسم صفت- واحد- مذکر- شالۀ اوړۀ- غټ اوړۀ- زیږه اوړۀ- لواړ اوړۀ-

بټ سورے:(بټ-سو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)یوه ذره- پوټے- لړ- خځوخے- خځوځکے- (۲)د درمن خس و خاشاک- د اوړو بوس- (۳)دروزه- د درمن د پاکولونه وروستو ناټکېدلی وړی- ګونډے- پتخی- جمع بټ سوری-

بټک:(بَ-ټک)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بټ سترګے-

بټکنجر:(بټ-کن-جر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لوئ کنجر- (۲)اصلی کنجر- جمع بټ کنجران- (م- هندی)-

بټکۍ:(بټ-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د بټ اسم تصغیر- (۲)د خاورې کټوی چې ښځې پکښې پۀ کورونه کښې نینې زریټوی-

بټل:(بَ-ټل)اسم- واحد- مذکر- لویه خاورینه پیاله- لوئ جام- لنګری- هغه خاورین جام چې بنګ پکښې څټلے شي- لوئ کنډولے- خاورینه کاسه- د نسوارو یا بنګو مېده کولو لوښے-

بټله:(بَ-ټۀ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بټله-

بټلے:(بَ-ټۀ-لے)اسم- واحد- مذکر- د خاورو کنډولے- جمع بټلی-

بټن:(به-ټن)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تنۍ- غنډه- د قمیص تنۍ- غینډه (د وزیرستان لُغت)- (۲)د بجلۍ د بلولو یا د بل کوم برقی څیز د چالو کولو تنۍ-

بټنګ:(به-ټنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټانګو- د ناشپاتۍ د خاندان یوه مېوه- نباتاتی نوم پائرس پېشیا (PYRUS PASSIA)- (۲)بټن (عامیانه)-

بټنه:(به-ټۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بټن-

بټن:(بَ-ټن)اسم- واحد- مؤنث- تنۍ- تکمه- (م- انګریزی- بټن)-

بټنه:(بَ-ټۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بټن (عامیانه)-

بټوسکے:(به-ټوس-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پټوسکے-

بټول:(به-ټه-ول)مصدر متعدی- (۱)څرمن وکښل- د بزې د څرمنې د وېښتو پۀ غرض د څرمنې څۀ حصه پرېکول- (۲)سندا کښېنول-

بټولے:(به-ټه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع بټولی- مؤنث بټولې- وګورئ بټول-

بټون:(بَ-ټ-ون)حاصل مصدر- وګورئ بټول-

بټونکے:(بَ-ټ-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بټونکی- مؤنث بټونکې- وګورئ بټول-

بټونګ:(بَ-ټ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ بټول-

بټونه:(بَ-ټ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بټول-

بټوه:(بټ-وه)اسم- واحد- مؤنث- بخځکۍ- وړوکې ګتۍ- د پېسو ساتلو کځوړه- د پېسو اېښودلو وړوکې بخځکۍ- جېبی بکس- جمع بټوې-

بټه:(بَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- بې مصالحې وریژې-

بټه:(بَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- لویه ګټه- غټه ګټه- کټه ګټه-

بټه:(بَ-ټه)اسم صفت- واحد- مؤنث- بقه- ټیغه- ټغه- زېږه- بوټه-

بټی:(بَ-ټی)اسم- جمع- مذکر- هغه اربشې چې صفا شوې او ټکېدلې وي- صفا سترا- پاکې- ټکېدلې اربشې-

بټیار:(بټ-یار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بټیارے- جمع بټیاران-

بټیاری:(بټ-یا-رۍ)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- د بټیاری مؤنث وګورئ بټیارے-

بټیارے:(بټ-یا-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- د بټ کونکے- نینې کونکے- روټۍ پخونکے- هغه خاص کسب کر چې پۀ غم ښادۍ یا د بل څۀ خاص غنډې پۀ موقع باندې پۀ دیارۍ اخلے پخلے کوی- جمع بټیاران-

مؤنث بټیاری-

بټي بيابان:(بَ-ټي-بَ-يا-بانْ)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)بټي بېبان- بې اُبو او بې ګیا مېره چې دَ تندې نه پکښې مرغې ړندېږی- وَچ ډاګ- وَچه مېره- (۲)چولی بیابان-

بټي بېبان:(بَ-ټي-بې-بانْ)اسم صفت- وګوره بټي بيابان- (عامیانه)-

بټېر:(بَ-ټېرْ)اسم- واحد- مذكر- دَ شمالي يخې خطې يو مارغهٔ چې دَ ژمی پهٔ سر کښې دَ پښتنو علاقو ته رارسي- سائنسي نوم کاټرنکس (COTURNIX)-

بټېرباز:(بَ-ټېرْ-بازْ)اسم صفت- واحد- مذكر- مرزې ساتونکے او جنګونکے- جمع بټېربازان-

بټېرے:(بَ-ټې-رےْ)اسم- واحد- مذكر- مرز- جمع بټېری- وګوره بټېر-

بټې:(بَ-ټِي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- منډاؤ-

بټې:(بَ-ټې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کرم خایُ- دَ خښتو پخولو یا شرابو ایستلو خاص خایُ- کوره- داش- (۲)دَ بټیا مؤنث- (۳)دَ جوارو دَ وړو یا دَ داسې نورو څیزونو دَ وریتولو خایُ- جمع بټیانې-

بچ:(بِچ)اسم- واحد- مذكر- هغه اواز چې دَ پیو لوشلو وخت کښې پیدا کیږی- (۲)کواښ- کورکور- زورنه-

بچ:(بَچ)اسم- واحد- مذكر- لویه ړنډه- کوتک- هغه لویُ لویُ لرګی چې دَ اوښ دَ بار پهٔ تړلو کښې پکاریږی- جمع بچونه-

بچ:(بَچ)اسم- واحد- مذكر- تخم- بوزغلے- زړے- جمع بچان-

بچ:(بَچ)اسم- واحد- مذكر- (۱)دَ خُلې دننه حصه- دَ ننه خُله- (۲)اُبهٔ چنبونه- (۳)ملې خلې- (۴)منډه- (۵)تکلیف- کړاؤ- (۶)دَ لرګی هغه خایُ چې وېنو خوړلے وی-

بچ:(بچ)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)تش- فضول- (۲)چنګلی-

بجاجے:(بَ-جا-جےْ)اسم- واحد- مذكر- مصنوعی-

بجاز:(بَ-جازْ)اسم- واحد- مذكر- وګوره بزاز-

بجازی:(بَ-جا-زیْ)اسم- واحد- مذكر- وګوره بزازی-

ببال:(بَ-بالْ)اسم- واحد- مذكر- سکارهٔ-

بجان:(بَ-جانْ)اسم- دَ خربوزې یا ایندوانې زړی-

بجاوول:(بَ-جا-وُ-وَلْ)مصدر متعدی- غږول- بجې (وخت) تېرول- (م- هندی- بجنا)-

بجاوېدل:(بَ-جا-وې-دَلْ)مصدر لازم- غږېدل- بجې (وخت) تېرېدل- (م- هندی- بجنا)-

بجټ:(بَ-جټْ)اسم- واحد- مذكر- میزانیه- دَ امدن او دَ خرڅ کلیز حساب- دَ کال مالی تخمینه- (م- انګریزی)-

بجد:(به-جدْ)صفت- پهٔ ضد- مُصر- اصرار کونکے- ضد کونکے- دَ بضد مُهمل- (ش- هندی)-

بجرګے:(به-جرْ-ګےْ)اسم- واحد- مذكر- یو قسم شین بوټے-

بجری:(بَج-رِیْ)اسم- واحد- مذكر- باجری- دَ کاڼو وړې زړې ټوټې- (ش- هندی)-

بجریل:(بَج-ره-يلْ)مصدر- پرې پرې کول- ټکړې ټکړې کول- ترازې کول-

بجریلے:(بَج-ره-يهٔ-لےْ)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګوره بجریل-

بجرین:(بَج-ره-ينْ)حاصل مصدر- وګوره بجریل-

بجریونکے:(بَج-ره-يونْ-کےْ)اسم فاعل- واحد- مذكر- وګوره بجریل-

بجرینګ:(بَج-ره-ينګْ)حاصل مصدر- وګوره بجریل-

بجرینه:(بَج-ره-يهٔ-نهْ)حاصل مصدر- وګوره بجریل-

بجړ:(بَ-جړْ)اسم- واحد- مذكر- کټه خېلخانه- کَټ خاندان- کټه کورنۍ-

بجړا:(بَج-ړاْ)اسم صفت- واحد- مذكر- تیارخور- کامل- ناراسته- لټ- بېکاره-

بجړانګې:(بَج-ړانګْ-ګېْ)اسم- جمع- مؤنث- چیرړانګې- چړانګې- زړې او شلېدلې جامی- بیړانګې-

بجړه:(بَج-ړهْ)اسم- واحد- مؤنث- وربخلهٔ- اوربېلی- دَ پرتوګ پېنځه- جمع بجړې-

بجز:(به-جُزْ)حرف جار- بغېر- سوا- بې-

بجس:(بَ-جسْ)اسم- واحد- مذكر- سپېږمه- سنیږی- (م- فارسی)-

بجل:(بَ-جُلْ)اسم- واحد- مذكر- (۱)دَ کټو جوړونه- دَ جوړونو هډوکی- کیټی- ښنګرے- پړکے- بجلکه- دَ پښې کیټی- (۲)ببړی- سپېښته- (م- ترکی)-

بجل باز:(بَ-جُل-بازْ)اسم صفت- واحد- مذكر- پهٔ بجل لوبه کونکے- پهٔ بېډیو لوبه کونکے-

بجلکه:(بَ-جه-له-کهْ)اسم- واحد- مؤنث- وګوره بجل- جمع بجلکې-

بجلی:(بَج-لِیْ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو مقناطیسی قوت چې دَ الېکټران او پروټان دَ حرکت پهٔ نتیجه کښې پیدا کیږی- (۲)هغه قوت چې هېر مشینونه پرې چلیږی- (۲)برق- برېښنا- (افغانستان)-

بجن:(بَ-جنْ)اسم صفت- واحد- مذكر- سپړن- هغه څوک چې سپړې پکښې شوې وی-

بجنتوب:(بَ-جن-توبْ) اسم- سپړنتوب- سپړن والے-

بجه:(بهٔ-جهْ)اسم- واحد- مؤنث- وَچه زمکه- خشکه زمکه- جمع بجې-

بجه:(بَ-جهْ)اسم- واحد- مؤنث- دَ موسیقۍ یوه درې ګټېزه آله- باجه- ترینګړ- وګوره باجه-

بجه:(بهٔ-جهْ)اسم- واحد- مؤنث- ګونبے- یو قسم چینجے چې پهٔ غنمو کښې پیدا کیږی- جمع بجې-

بجه:(بهٔ-جهْ)اسم- واحد- مؤنث- سپږه- جمع بجې- (دَ ماشومانو لهجه)-

بجه:(بَ-جهْ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ وخت دَ ځرګندولو دَ پاره دَ ګړیال دَ غږېدو شمېر چې اوس دَ وخت عامه پیمانه ده او دَ هرې یوې یا نیمې ګنټې سره هغه هومره بجې ونېلے شی- مثلاً دوه بجې، دوه نیمې بجې- جمع بجې-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېښ "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکوڼ)، ہ "(ز-ړه)، ۀ "(ډو-بې-دهٔ)

بُجه:(بُ-جه)اسم- واحد- مؤنث- بوجه شوړه- ماشوړه- کشکوړے- هغه واښهٔ یا ټوټه یا بل څیز چې سوری پرې بندولے شي- جمع بُجې-

بُجه وجه:(بهٔ-جه-وهٔ-جه)متعلق فعل- لټ پهٔ لټ-

بجېدل:(به-جې-دل)مصدر لازم- خاموشه کېدل- چپ کېدل-

بجېدن:(به-جې-دن)حاصل مصدر- وګورئ بجېدل-

بجېدنګ:(به-جې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ بجېدل-

بجېدنه:(به-جې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بجېدل-

بجېدونکے:(به-جې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بجېدونکي- مؤنث بجېدونکې- وګورئ بجېدل-

بجی:(به-جی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث بې حيا- بې شرمه- پليته ښځه- (غالباً دَ بجی نومې کومې ښځې لهٔ رعايته)-

بجی:(به-جی)اسم- واحد- مؤنث- تے- (دَ ماشومانو ژبه)-

بجی څټه:(به-جی-څ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اوښ دَ بار سرباری پنډوکے-

بجے:(به-جے)اسم- زړے- زېړے- بيج- تخم- بج-

بځرک:(بځ-رک)اسم- واحد- مذکر- کشتی- (م- هندی- بجر)-

بخن:(به-خن)اسم صفت- واحد- مذکر- حريص- مؤنث بخنه- جمع مؤنث بخنې-

بخنے پلار:(به-خه-نے-پلار)اسم- واحد- مذکر- پلندر- مېړنے پلار-

بخې بخې:(بهٔ-خې-به-خې)اسم صفت- نرم نرم-

بخې وخې:(بهٔ-خې-وهٔ-خې)اسم صفت- حيران- پرېشان-

بچ:(بچ)اسم- جمع- مذکر- (۱)اولاد- بال بچ- زوزاد- (۲)دَ بوټو تېغونه- (م- هندی)-

بچ:(بچ)اسم- جمع- مذکر- دَ يوې ترخې دوائی نوم-

بچ:(بچ)صفت- (۱)محفوظ- له خطرې ساتلے- (۲)روغ لهٔ بيمارۍ وغېره- (م- هندی)-

بچ:(بچ)فعل امر- خان وساته- محفوظ شه يا کړه- (م- هندی)-

بچاؤ:(بَ-چاؤ)اسم- (۱)ساتنه- بچ ساتنه- اسره- حفاظت- (۲)پناه- سلامتی- (۳)دَ حفاظت ځائې- دَ خطرې نه ساتلے شوے-

بچاوړ:(به-چا-وړ)اسم- واحد- مذکر- لويه دری- لوئې فرش-

بچاوړه:(به-چا-وړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کټ څادر- (۲)بستره- (۳)فرش- (۴)دری-

بچاوول:(به-چا-و-ول)مصدر متعدی- پناه ورکول- ساتل- محفوظ ساتل- ژغورل-

بچاوونکے:(به-چا-و-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بچاوونکي- مؤنث بچاوونکې- وګورئ بچاوول-

بچاوونه:(به-چا-و-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بچاوول-

بچاوېدل:(به-چا-وې-دل)مصدر لازم-ژغورل- ساتل- بچ کېدل- ژغورلے کېدل- ساتلے کېدل-

بچاوېدنه:(به-چا-وې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بچاوېدل-

بچاوېدونکے:(به-چا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بچاوېدونکی- مؤنث بچاوېدونکې- وګورئ بچاوېدل-

بچاوېدهٔ:(به-چا-وې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ بچاوېدل-

بچ بچ:(بچ-بچ)فعل امر- بچ شه- لار پرېږده- خان سمبال کړه- وګورئ پهٔ دېو معنو کښې بچ- (م- هندی)-

بچ بچاؤ:(بچ-به-چاؤ)اسم معرفه- (۱)خان ساتنه- حفاظت- (۲)ثالثی- يو بل لهٔ جګړې محفوظ ساتنه- صلح- (م- هندی)-

بچت:(به-چت)اسم- واحد- مذکر- (۱)بچ شوے مال- (۲)کفايت شعاری-

بچر:(به-چر)اسم- واحد- مذکر- نوے څوان- دَ دړلسو يا دیارلسو کالو دَ عمر ځلمے- بچرکے-

بچرکے:(بَ-چر-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ بچر تصغير- ځلموټے- وګورئ بچر-

بچړے:(بَ-چهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- کُوټے- وړوکے- کوچانے- کوټکے-

بچړے:(به-چه-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوا مېښې دَ لکی دَ وېښتو څنډے- بچکړے- دَ متروکې دَ سرڅنډے-

بچړی مړے:(بچ-ړی-مهٔ-ړے)اسم صفت- خوئې مړے- هغه څوک چې خوئې ئې مړوی- بچه مړے-

بچړے:(بچ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بچونے- بچے- اولاد- خوئې- بچوړے- (۲)دَ حيوان بچے-

بچک:(بَ-چک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کجوری دَ څانګې نوی تېغی- (۲)دَ تماکو دَ ګل سره نژدې دَ تماکو ورې پاڼې- بچکے- بچے- بوڅکے- بچ کچ- بچکک-

بچک:(بَ-چک)اسم- واحد- مذکر- ميرا- ميراؤ- مېراب- دَ ابهٔ خور دَ ابو دَ حفاظت او پهٔ مختلفو کليو باندې دَ وېشلو نګران- جمع بچکان-

بچ کچ:(بچ-کچ)اسم- جمع- مذکر- (۱)بال بچ- اولاد- زوزاد- (۲)واړهٔ بچی او کچه ماشومان-

بچ کچ:(بچ-کچ)اسم- جمع- مذکر- (۱)پاتې- پاتې شوی- (۲)پاتې شونی- (۳)دَ ځپلمی هغه پټ چې مچوغنو کښې اچولے شي-

بچکرکے:(به-چه-کر-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)يوه وړه آله چې يو مشين کښې دَ امداد دَ پاره پکارېږی- (۲)شپېته- (۳)دَ لرګی کاڼی يا دَ اُسپنې وړه ټکره- (۴)دَ لټ يا کوړکی دَ باندې کولو نرے سيخ- (۵)دَ جامو بعضو حصو کښې دَ کپړې ورې ورې ټوکړې- (۶)بچکی- جمع بچکرکی-

بچکړے:(بَ-چ-کهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ متروکې دَ سرڅنډے- (۲)دَ غوا مېښې دَ لکی څنډے- (۳)هغه وړه ټکره چې دَ لرګی، اسپنې يا دَ کپړې دَ مرمت دَ پاره پهٔ دغو څيزونو کښې اچولے شي-

بچکک:(بچ-کک)اسم- واحد- مذکر- دَ تماکو، کنو يا دَ نورو بوټو تېغی-

ئ (څې-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پيا-لې)، ېړ (تن-دې) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

وګورئ بچک-

بچکے:(بَ-چَ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بچکک-

بچکے:(بَ-چَ-کے)اسم- واحد- مذکر- جمع بچکي- بچوکے- بچولے- د پیوی خُنډے-

بچکي:(بَ-چه-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ بچکرکے-

بچګانه:(بَچ-ګا-نه)صفت- د ماشومانو سره تعلق لرونکے-

بچکی:(بَچ-کي)اسم- واحد- مذکر- کمېشن- منافع- چونګے- د خرڅون په وخت چې د اصل قیمت نه خرڅونکي یا د هغهٔ ایجنټ نه څهٔ زیاتی ګرې پېسی په لاس ورشي-

بچندر:(بَ-چن-در)اسم- واحد- مذکر- پرکټے- هغه ماشوم چې کُندېه یا پربښوے شوې ښځه ئې د خان سره د نوی مېړهٔ کور ته راولي- جمع بچندران- (م- فارسی)-

بچندره:(بَ-چن-دهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- پرکټې- د بچندر مؤنث-جمع بچندرانې- (م- فارسی)-

بچنګ:(بَ-چَنګ)اسمِ تصغیر- مذکر- (۱)بچنګے- بچونګے- بچو- بچوکے- (۲)دَ مینې لهٔ کبله وړوکی ماشوم ته وئېلے کېدونکے لفظ- (۲)دَ طنز نه چاته وئېلے کېدونکے لفظ-

بچنګے:(بَ-چنګ-کے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- وګورئ بچنګ-

بچو:(بَ-چو)اسم- (۱)خوږ- لور یا کشر ته دَ مینې کلمه- (۲)پردو ته طنزاً دخطاب کلمه-

بچوړی:(بَ-چو-ړی)اسم- جمع- مؤنث- لوئ وږدې جُرابې- (افغانستان)-

بچوړے:(بَ-چو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ انسان یا دَ حېوان بچے- (۲)دَ ډېرې مینې لهٔ کبله ماشوم ته وئېلے کیږی- میسوړے- مرغوړے- ماشوم زوئ- وړوکے ملک- (۲)طنزاً وئېلے کېدونکے لفظ-

بچوکے:(بَ-چو-کے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- وګورئ بچنګ-

بچوکے:(بَ-چو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ بچکے- (۲)دَ پنې دَ سر څوکه- (۲)دَ سر دَ وېښتو دَ ترلو کپړه- (۴)پېوے- (۵)دَ چابک دَ سر خُنډے-

بچول:(بَ-چَ-وَل)مصدرِ متعدی- بچ کول- خلاصول- ساتل- پهٔ ځنګ کول- ژغورل- بچت کول-

بچونکے:(بَ-چَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع بچونکی- مؤنث بچونکې- وګورئ بچول-

بچونګړے:(بَ-چونګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ انسان یا دَ حېوان وړوکے بچے-

بچونه:(بَ-چَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ بچول-

بچونه:(ب-چو-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بچاونه-

بچوے:(بَچ-وے)اسم- واحد- مذکر- تنکی څانګه-

بچوے:(بَ-چَ-وے)اسم- واحد- مذکر- جمع بچوی- (۱)دَ تازیانې سر- پېوے-

بچوکے-

بچونے:(بَ-چو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ لنکوټې اوبزانده لمنه-

بچه:(بَ-چه)اسمِ صوت- (۱)اچه- چوچکے- کچې- دَ وزې شړلو آواز- (۲)بچ شه-

بچه باز:(بَ-چه-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- اغلام باز- ملکانو سره بدفعلی کونکے- لواطت کونکے- ملکان ساتونکے- بچی خور-

بچه بازی:(بَ-چه-با-زی)اسم- مؤنث- اغلام- دَ بچه باز کار او پېشه-

بچه پونګ:(بَ-چه-پونګ)اسم- جمع- نسل- واړهٔ زاړهٔ- کورنی- ټبر- بچی مچی-

بچه خور:(بَ-چه-خور)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ بچه باز-

بچه خوش:(بَ-چه-خوش)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- هغه څوک چې ښائسته ملکان ئې خوښ وی-

بچه ګته:(بَ-چه-ګ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وزیره ګته- لاکو لکړه- کنخه ګته- دَ کچې او مېنځې ګټې تر مېنځه ګته- دَ کټې ګټې نه پس دربمه ګته-

بچه ګرو:(بَ-چه-ګرو)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)کرواړه- (۲)دَ رېبلی شوی فصل پهٔ پټی کښې پاتې ډنډری- (۲)هغه موسم چې پکښې زړه غله ختمه شی او نوې لا رارسېدلې نهٔ وی-

بچه مرې:(بَ-چه-مهٔ-رې)صفت- مؤنث هغه ښځه چې ماشوم ئې مړ شوے وی-

بچه مړے:(بَ-چه-مهٔ-ړے)صفت- مذکر- هغه سړے چې ماشوم ئې مړ شوے وی-

بچی مار:(بَ-چی-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)انتهائی خوامشمند- (۲)وړسترکے- مؤنث بچی ماره-

بچی ماره:(بَ-چی-ما-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)دَ بچی مار مؤنث- (۲)هغه ښځه چې خپل زامن ئې بدی شی- (۳)هغه ښځه چې حرامی څوئ ئې راوړے او وژلے وی- بدکاره ښځه- جمع بچی مارې-

بچې بچې:(بهٔ-چې-بهٔ-چې)اسمِ صوت- دَ چېلو او ګډو دَ را بللو خاص غږ- (۲)ډرې ډرې-

بچېدل:(بَ-چې-دل)مصدرِ لازم- ساتل کېدل- بچ کېدل- خلاصېدل- ژغورېدل- محفوظ پاتې کېدل-

بچېدنه:(بَ-چې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ بچېدل-

بچېدونکے:(بَ-چې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع بچېدونکی- مؤنث بچېدونکې- وګورئ بچېدل-

بچېدهٔ:(ب-چې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ بچېدل-

بچېری:(بَ-چې-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بیانه- دَ اسپې بچی-بچېرے-

بچېرے:(بَ-چې-رے)اسم- واحد- مذکر- بیانې- دَ اسپې بچے- بچېری-

بچېرے:(بَ-چې-رے)دَ ندا کلمه- خوږ ته دَ مینې دَ خطاب کلمه- جمع بچېری- مؤنث بچېری-

بچي:(ب-چي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ "بچے" (وړومبی، دوېمه او شپږمه معنٰی کښې) مؤنث- (۲)لور ته دَ خطاب کلمه-

بچے:(بَ-چے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کم عمر انسان يا حېوان- (۲)چوچک- (۳)دَ بوټو قلمونه- (۴)دَ سرکي وغېره دَ خرابېدو نه پس مغې کښې جوړ شوے گُپ- (۵)دَ دېوال بهر ته راوتلې حصه چې گذاربدو ته نژدې وی- (۶)بې تجربې سړے- (۷)دَ دروغو تسلی- (۸)دَ مرز يو قسم چې غاړه يې سپينه وی- (۹)خوی ته دَ خطاب کلمه-

بڅخکی:(بَخ-خه-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړه کڅوړه، چې ښځې پکښې دَ گنډلو سامان ږدی- بخچکی- بخچی- (م- ترکی)-

بڅخکی:(بُخ-خه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وُکوړئ بڅخکی- (م- ترکی)-

بڅخه:(بُخ-خه)اسم- واحد- مؤنث- کڅوړه- بخچه- لويه کڅوړه چې جامې وغېره پکښې ايښوے شی- بخچه- بقچه- (م- ترکی)-

بڅرکے:(بَ-څَر-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بڅرے- سپړکے- وړوکے انګار- (۲)پوټسکے- ذره- لږ څيز- جمع بڅرکی-

بڅرے:(بَ-څَهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- وُکوړئ بڅرکے- جمع بڅری-

بڅکی:(بَخ-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ گنډلو دَ ستنو دَ ايښوو لهٔ پاره وړه بوجنکی-

بڅه:(به-څه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غرهٔ دَ يوې ګيا نوم- ببڅه-

بڅے:(به-څے)اسم- واحد- مذکر- بچے- ماشوم- دَ حېوان وړوکے- بچے-

بحال:(بَ-حالَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ حال- (۲)پهٔ خپل ځائې او مقام- (۳)پهٔ نوکرۍ واپس راغلے- دَ معطل کېدو نه پس پهٔ نوکرۍ دوباره لګولے شوے- (۴)زوړ حال ته بېرته راغلے- (م- فارسی)-

بحالی:(بَ-حا-لي)اسم- دَ بحال کېدو حالت- پهٔ خپل حال راتلهٔ- دوباره مقرر کېدهٔ- (م- فارسی)-

بحث:(بحثَ/باس)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ دوؤ تنو تر مينځه زبانی يا تحريری دليل بازی- (۲)جګړه-- زبانی جګړه- (م- عربی)-

بحر:(بحرَ/به-حَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)سمندر- درياب- (۲)دَ شعر دَ وزن مخصوصه پېمانه- (۳)دَ صفت پهٔ طور لوئې عالم فاضل- لوئې پوه- (۴)سخې- جمع بحرونه-

بحران:(بَح-رانَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)فېصله کُن وخت، ورځ يا لمحه- (۲)دَ مرض هغه کېفيت چې مريض دَ مرګ او ژوند تر مينځه نښتے وی- (۳)کشمکش- (م- عربی)-

بحرانی:(بَح-را-ني)اسم صفت- بحران ته منسوب- ګهوړی-

بحر بې پايان:(بَح-رې-بې-پا-يانَ)اصطلاح- (۱)هغه سمندر چې تَل يې نهٔ وی معلوم- ډېر لوئې او ژور سمندر- (۲- صفت)لوئې عالم- (۳)ډېر سخی- (م- فارسی)-

بحر ظلمات:(بَح-رې-ظُل-ماتَ)اسم- کالی درياب- قاری درياب- قالی درياب- هغه سمندر چې لار پکښې نهٔ ښکاری- (م- عربی)-

بحر و بر:(بَح-رو-بَر)اصطلاح- سمندر او زچه- لونده او وچه- ټوله دنيا-

بحری:(بَح-ري)اسم- واحد- مذکر- دَ يو ښکار کونکی مارغهٔ نوم- باری-

بحری:(بَح-ري)اسم صفت- دَ بحر سره منسوب- سمندری- دريابی- (م- عربی)-

بحريه:(بَح-ري-يه)اسم- واحد- مؤنث- سمندری فوځ-

بحل:(ب-حِل)اسم- معاف کونه- پِل کونه- بخښنه- (م- فارسی/عربی)-

بحمدالله:(ب-حَم-دل-لاه)اصطلاح- دَ خدائې پاک پهٔ حمد- دَ شکر يئې دَ اظهار کلمه- (م- عربی)-

بحور:(بُ-حُورَ)اسم- جمع- مذکر- دَ بحر جمع- (۱)سمندرونه- (۲)دَ شعر دَ وزن خصوصی پېمانې- (م- عربی)-

بحيره:(بُ-حي-ره)اسم تصغير- وړوکے سمندر- (م- عربی)-

بخاتې:(بُ-خا-تې)اسم- جمع- مذکر- وُکوړئ پلوڅکی-

بخار:(بُ-خارَ)اسم- جمع- مذکر- دَ ګرمۍ لهٔ وجې راختلې دانې-

بخار:(بُ-خارَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګرمی- لوګے- بړاس- تپ- هواړ- (۲)غصه- تاؤ- (۳)تبه- (م- فارسی)-

بخاره:(بُ-خا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يو قسم خوږه خربوزه- (۲)دخلے- لوټ کوړے-

بخاری:(بُ-خا-ري)اسم- واحد- مذکر- دَ امام بُخاری رحمة الله عليه جمع کړے دَ حديثو کتاب چې دَ شپږو صحيحو کتابونو نه يو او وړومبے دے-

بخاری:(بُ-خا-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- انګيټی- چندلی- چړی- تودلی-

بخبه:(بَخ-بِه)اسم- واحد- مؤنث- جمع بخبې- وُکوړئ بخی- (م- فارسی)-

بخت:(بَخت)اسم- واحد- مذکر- نصيب- قسمت- حصه- برخه- پاړه- مرغه- طالع- اقبال- جمع بختونه- (م- فارسی)-

بخت:(بُخت)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)مصروف- لګيا- مشغول- (۲)کېر- ښخ شوے- مؤنث بُخته- جمع مؤنث بختې-

بخت پوړی:(بَخت-پو-ړي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- قسمت پوړی- هغه لفافه چې پکښې دَ ماشومانو دَ پاره څهٔ څيز بند شوے وی-

بختر:(بَخ-تَر)اسم- واحد- مذکر- زغره- بکتر- بکتر- (ش- فارسی- بکتر- بکتر)-

بختوالے:(بُخت-وا-لے)اسم- مشغولتيا-

بختور:(بَخ-ت-وَر)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- دَ ښهٔ بخت خاوند- دَ ښهٔ نصيب خُښتن- نېک نصيبه- بختيار- نېک مرغه- نېک بخته- خوش قسمته- مؤنث بختوره- جمع مؤنث بختورې-

بختول:(بُخ-ته-وَل)مصدر متعدی- مصروف کول- مشغولول- پهٔ څهٔ کار اخته کول- (۲)ښخول- کېروُل-

بختونکے:(بُخ-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بختونکی- مؤنث

"ی" (ځی-رل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پيا-لي)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وُکوری تشريحات صفحه ۱

بختونکې- وګورئ بختول-

بختونه:(بخ-ته-وڼ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ بختول-

بُخته:(بُوخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه خټه چې قدم پکښې نښلی- (۲)مشکل-

بختي:(بخ-تي)اسمِ صفت- واحد- مذکر/مؤنث- وګورئ بختور-

بختي:(بخ-تي)اسم- واحد- مذکر- هغه اوښ چې صرف د سورلی د پاره مخصوص وی او باری نهٔ وی-

بختیار:(بخت-یار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې بخت ئې ملګرے وی- بختور- قسمتی- بختی- د پښتنو یوه قبیله- جمع بختیاران-

بختیاری:(بخت-یا-ری)اسم- واحد- مؤنث- د بختیار سره متعلق-

بختین:(بخ-تین)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر- بختي- بختور-

بختېدل:(بخ-تې-دل)مصدرِ لازم- (۱)مصروف کېدل- مشغوله کېدل- پهٔ څهٔ کار اخته کېدل- (۲)نښلېدل- کېږېدل-

بختېدن:(بخ-تې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ بختېدل-

بختېدنګ:(بخ-تې-دنګ)حاصلِ مصدر-. وګورئ بختېدل-

بختېدنه:(بخ-تې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ بختېدل-

بختېدونکے:(بخ-تې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع بختېدونکي- مؤنث بختېدونکې- وګورئ بختېدل-

بختېدونے:(بخ-تې-دو-نے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع بختېدوني- مؤنث بختېدونې- وګورئ بختېدل-

بخچکی:(بخ-چه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ بخڅکی-

بخچکی:(بخ-چه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ بخڅکی-

بخچه:(بخ-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بخڅه- جمع بخچې-

بخڅکی:(بخ-څه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ بخڅکی-

بخڅه:(بخ-څه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بخڅکی-

بخره:(بخ-ره)اسم- واحد- مؤنث- جمع بخرې- (۱)حصه- (۲)وراثت- (۳)د جنس پهٔ شکل کښې معاوضه یا کرایه- (۴)نصیبه- قسمت- (۵)برخه- (۶)ولایت- بزرګی- (۷)د زمکې یوه حصه چې رقبه ئې مختلفو علاقو کښې بیله بیله زی-

بخره من:(بخ-ره-من)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)خوشحاله- (۲)بخره موندونکے- (۳)خوش نصیب- مؤنث بخره منه-

بخشش:(بخ-شش)اسم- مذکر- انعام- ورکړه- بخښنه- معاف کونه- بخشش- بخښښ-

بخشی:(بخ-شی)اسم- واحد- مذکر- د مغلو پهٔ سرکاری نظام کښې د تنخواه وغېره حساب کونکے افسر- اکاونټنټ جنرل- خزانچی-

بخشیش:(بخ-شیش)اسم- واحد- مذکر- هبه- چا ته د انعام پهٔ ډول پیسې، د استعمال څیز یا زمکه ورکونه- عطیه- بخښښ- بخشش-

بخښښ:(بخ-ښښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بخشش/بخشیش-

بخښل:(بخ-ښل)مصدرِ متعدی- (۱)معاف کول- (۲)پل کول- (۳)یو څیز چا ته ورکول-

بخښلے:(بخ-ښهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع بخښلی- مؤنث بخښلې- وګورئ بخښل-

بخښندویه:(بخ-ښن-دو-یه)اسمِ فاعل/صفت- واحد- مذکر/مؤنث- جمع بخښندوني- معافی ورکونکے- بخښونکے- سخی- بخښنده-

بخښنده:(بخ-ښن-ده)اسمِ فاعل/صفت- واحد- مذکر/مؤنث- انعام ورکونکے- بخښونکے- بخښندویه- (م- فارسی)-

بخښنه:(بخ-ښهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ بخښل-

بخښونکے:(بخ-ښون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع بخښونکی- مؤنث بخښونکې- وګورئ بخښل-

بخښونے:(بخ-ښو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع بخښونی- مؤنث بخښونې- وګورئ بخښل-

بخښه:(بخ-ښهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ بخښل-

بُخل:(بُ-خل)اسم- واحد- مذکر- کنجوسی- شومتیا- سختی- شوموالی- ممسکی- کروټی- بخیلی- سوکتوالے-

بخله:(بخ-له)اسم- واحد- مؤنث- ورخاړے- د یو ساګ نوم- نباتاتی نوم پورټولیکا اولریسیا (PORTOLICA OLRISSIA)-

بخمل:(بخ-مل)اسم- واحد- مذکر- (۱)یوه مشهوره رېښمینه کپړه- مخمل- (۲)نرم- نازک- پوست (دېو معنو کښې صفت)- (ش- عربی/فارسی مخمل)-

بخملی:(بخ-م-لی)اسم- واحد- مذکر- د سپرلی د موسم یو الوتونکے سور رنګے چینجے- سره ناوې-

بخملی:(بخ-م-لی)اسمِ صفت- د بخمل خاصیت لرونکے-

بخملی:(بخ-م-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ قرآن پاڼه-

بخملی:(بخ-م-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پیشوګی- پشی-

بخملے:(بخ-م-لے)اسم- واحد- مذکر- یو مارغهٔ چې د شپې الوزی-

بخن:(به-خن)لاحقه- د خنو رنګونو پهٔ آخر کښې د راتللو پهٔ صورت کښې معنٰی کښې کمے پېدا کونکې لاحقه-

بخن بخن:(ب-خن-ب-خن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بخنه بخنه- رنګا رنګ- قسما قسم- مختلف رنګ- مؤنث بخنه بخنه- جمع مؤنث بخنې بخنې-

بخور:(بخ-زر)اسم- جمع- مذکر- هغه مارغان چې پهٔ خوراک لګیا وی-

بخوړے:(ب-خو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)خیالی بؤ- بؤ- بَلا- (۲)د بوسو سخے- ړېږے- جمع بخوړی- (افغانستان)-

بخول:(بخ-ول)اسم- واحد- مذکر- (۱)کوګل- (۲)فریاد- زوېرګے- آه-

بخوله:(بخ-وهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بده واقعه- ناڅاپی حادثه- ستم- غمژنه واقعه- (۲)سالنډے- جمع بخولې- (افغانستان)-

بخیل(ب-خیل)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)خېلی- ضدی- ژړاندو- اړک- سخت- (۲)ممسک- کنجوس- شوم- د سخی ضد- (۳)هغه ماشوم چې خېل

نیسی او هر وخت يې په زړا خُله ورانه وی- مؤنث بخیله- جمع مؤنث بخیلې- جمع بخیلان-

بخیلی:(به-خي-لي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شومتیا- کنجوسی- پیسه چوکی- (۲)ناړامی- ناړامتیا- ضد- خپل- سختی-

بخی:(به-خي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کینده- په لاس یا په مشین کړے نیغ گنډ- (ش- فارسی- بخیه)-

بد:(بَد)اسم- واحد- مذکر- خنزیر- سرکوزے- بد ځناور-

بد:(بَد)اسم صفت- (۱)خراب- ناکاره- د ښهٔ ضد- خُشے- (۲)فسادی- جگړالو- شریر- د سخت، ښهٔ، چالاک او تکړه په معنو کښې استعمالیږی- جمع بدان- مؤنث بده- جمع مؤنث بدې/بدانې- د اسمونو سره د سابقې په صورت کښې د جوړ شوی صفت آخرنے توری "ه" لرونکے وی-

بداختر:(بَد-اَخ-تَر)اسم صفت- واحد- مذکر- بدمرغه- بدنصیبه- بدبخته- سپیرهٔ- بدفاله- بدشگونه- (م- فارسی)- بداخښے:(بَد-اَخ-ښے)اسم- واحد- مذکر- د خور خاوند- (متروک)- بداخلاق:(بَد-اَخ-لاق)اسم صفت- واحد- مذکر- بدخویه- بدکرداره- بداخلاق لرونکے- غیر مهذب- جمع بداخلاقی- مؤنث بداخلاقه- جمع مؤنث بداخلاقې- بداخلاقی:(بَد-اَخ-لا-قی)اسم- د بداخلاق کیدو حالت- (م- فارسی)- بدارِوا:(بَد-اَر-وا) اسم صفت- واحد- مذکر- اصل "بدارواح" دے- وړ سترگے- حریص- اروا ویړے- چې مړیږی نه- بخن- بدارواتوب:(بَد-ار-وا-توب)اسم- د بداروا کیدو حالت- بدارواني:(بَد-ار-وا-ني)اسم- واحد- مؤنث- د بداروا کیدو حالت- بدارواتوب- بداصل:(بَد-اَ-صل)اسم صفت- واحد- مذکر- کم ذاته- کمینه- رذیل- جمع بداصلان- مؤنث بداصله- جمع مؤنث بداصلې- بداطوار:(بَد-اَط-وار)اسم صفت- واحد- مذکر- بداخلاق- بدچلنه- بې واکه- بدمعاش- چې طور اطوار يې خراب وی- (م- فارسی)- بداعتقاد:(بَد-اع-تِ-قاد)اسم صفت- واحد- مذکر- بې عقیدې- هغه څوک چې عقیده يې خرابه وی- مؤنث بداعتقاده- جمع مؤنث بداعتقادې- (م- فارسی)- بدانتظامه:(بَد-ان-تِ-ظا-مه)اسم صفت- هغه څوک چې د یوې معاملې ښهٔ بندوبست نهٔ شی کولے- بې بندوبسته- خراب بندوبست کونکے- بدانتظامی:(بَد-ان-تِ-ظا-مي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خراب انتظام- گډوډ بندوبست- (۲)ړے کړے- جمع بدانتظامی- بداندیښ:(بَد-اَن-دیښ)اسم صفت- واحد- مذکر- بدنیته- بدزړے- تورنیتے- خراب- بد- باطن- (م- فارسی)- بداندیښی:(بَد-اَن-دي-ښي)اسم- واحد- مؤنث- بدنیتی- تورنیتی- بدباطنی- جمع بداندیښی- بداواز:(بَد-آ-واز) اسم صفت- واحد- مذکر- مکروه اوازه- بداواز لرونکے- بداوازے:(بَد-آ-وا-زے)اسم صفت- واحد- مذکر- د معنې د پاره وگوری بداواز- بداوخښے:(بَد-او-ښے)اسم- واحد- مذکر- د خور خاوند- (متروک)- بداوی:(بَ-دا-وي)اسم صفت- دشمنی- تربگنی- بدباطن:(بد-با-طن) اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې اندرون يې خراب وی- مؤنث بدباطنه- جمع مؤنث بدباطنې- بدبخت:(بَد-بخت)اسم صفت- واحد- مذکر- سپیرهٔ- بدقسمته- کم نصیبه- بدنصیبه- جمع بدبختان- مؤنث بدبخته- بدبختی:(بَد-بخ-تي)اسم- واحد- مؤنث- بدنصیبی- بدقسمتی- سپیرهٔ توب- د بدبخت کیدو حالت- جمع بدبختی- بدبد:(بَد-بَد) اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- خراب خراب- بدکار بدکار- قابل رحم- زران وران- خطا خطا- مؤنث بده بده-جمع مؤنث بدې بدې- بدبو: (بَد-بُو)اسم- واحد- مذکر- سخا بوئی- خراب بوئی- سپیرن- بدبوړے: (بَد-بو-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- بوټ وربوزے- خفه- د تریو تندی خاوند- بدبین:(بَد-بین)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د خوشبین ضد- هغه څوک چې هر شے ورته په نظر بد ښکاری- (۲)مخالف- دشمن- بدبوهے:(بَد-بو-هے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع بدبوهی- مؤنث بدبوهه- وگوری بدبویه- بدبوئی:(بَد-بو-ئي)اسم- واحد- مؤنث- د خراب بوئی حالت- هغه کیفیت چې د سخا څیز په نتیجه کښې پیدا شوے وی- بدبوئیں:(بَد-بو-ئیں)اسم- واحد- مذکر- وگوری بدبوئی- بدبویه:(بَد-بو-یه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- خراب بوئ لرونکے- سخا- گنده بوئی لرونکے- بدپرهیز:(بَد-پر-هیز)اسم صفت- واحد- مذکر- بې احتیاطه- پرهیز نهٔ کونکے- پال نهٔ ساتونکے- بدپرهیزی: (بَد-پر-هي-زي)اسم- واحد- مؤنث- بې احتیاطی- بې پالی- بې پرهیزی- پرهیز نهٔ کونه- د حد نه تجاوز کونه- فضول خرچی- بدپوره:(بَد-پو-ره) اسم صفت- واحد- مذکر- د قرض معامله کښې کوته سړے- بې اعتماده- بې معامله- جمع بدپوری- بدپورے:(بَد-پو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- په قرض یا نورو معاملو کښې کوته- بد معامله- مؤنث بدپوره- جمع بدپوری- وگوری بدپوره- بدپوزے:(بَد-پو-زے)اسم صفت- واحد- مذکر- بده پوزه لرونکے- خراب پوزے- جمع بدپوزی- بدتر:(بَد-تَر) اسم صفت- واحد- مذکر- ډېر خراب- نهایت خراب- د بد "تفضیل بعض"- جمع بدتران- مؤنث بدتره- بدتری:(بَد-تَ-ري)اسم- مؤنث- د بدتر کیدو حالت- وگوری بتری- بدترین:(بَد-تَ-رین)اسم صفت- واحد- مذکر- بې کچه خراب- ډېر زیات خراب- د بد "تفضیل کُل"- جمع بدترین- بدتمیز:(بَد-تَ-میز)اسم صفت- واحد- مذکر- تمیز نهٔ لرونکے- وران- بې حیا- شریر- بې لحاظه- کاواک- بې ډبه- رذیل- مؤنث بدتمیزه- جمع مؤنث بدتمیزې- بدتمیزه:(بَد-تَ-مي-زه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د بدتمیز تانیث او جمع- وگوری بدتمیز- بدتمیزی:(بَد-تَ-مي-زي) اسم- واحد- مؤنث- د بدتمیز کیدو حالت- بې تمیزه کار- بې حیائی- بداخلاقی- بدتهذیب:(بَد-ته-ذیب)صفت- هغه څوک چې تهذیب نهٔ لری- گوار- بدتهذیبی:(بَد-ته-ذي-بي)اسم- واحد- مؤنث- د بد تهذیبه کیدو حالت- بدتیا:(بَد-تیا)اسم- واحد- مؤنث- بدوالے- بدتوب- بدکیدهٔ- بدجوله:(بَد-جو-له)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- بدرنگه- بدشکله- وران شکلے- بدقواره- بې نمکه- بدچاروکے:(بَد-چا-رو-کے)اسم صفت- واحد-

مذکر- بدکاره- بدچلنه- بدفعله- بدچلن:(بَد-چه-لَن)اسم صفت- واحد- مذکر- بدکرداره- بدکاره- بدچلند- مؤنث بدچلنه- جمع مؤنث بدچلنې- بدچلند:(بَد-چه-لَند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بدچلن- بدچلنی: (بَد-چه-له-نی)اسم- واحد- مؤنث- دَ بدچلنه کېدو حالت- بدخونی- بداخلاقی- بدحال:(بَد-حال)اسم صفت- واحد- مذکر- بدروزګاره- خراب حالت لرونکے- سپېرۀ- بدحاله:(بَد-حا-له)اسم صفت- مؤنث- وګورئ بدحال- بدحالی:(بَد-حا-لی)اسم- مؤنث- دَ بدحاله کېدو حالت- بدخرڅ:(بَد-خرڅ)اسم صفت- مذکر- فضول خرچه- عیاش- غېر مقتصد- هغه څوک چې بې ځایه لګښت کوی یا دَ لږ لګښت په ځایُ ډېر لګښت کوی- مؤنث بدخرڅه- بدخرڅی:(بَد-خر-څی)اسم- واحد- مؤنث- بې ځایه خرڅ- دَ امدن نه زیات خرڅ- فضول خرچی- بدخرڅے:(بَد-خر-څے) اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بدخرڅ- بدخصلت:(بَد-خص-لت) اسم صفت- مذکر- خراب خصلت لرونکے- بدخویه- مؤنث بدخصلته- جمع مؤنث بدخصلتې- (ش- فارسی)- بدخصلتی:(بَد-خص-ل-تی)اسم- واحد- مؤنث- بدعادتی- بدخونی- بداخلاقی- بدکرداری- بدخط:(بَد-خط) اسم صفت- (۱)دَ خوش خط ضد- خراب خط لیکونکے- (۲)بدرنګ- جمع مؤنث بدخطې- (ش- فارسی)- بدخطی:(بَد-خه-طی)اسم- واحد- مؤنث- دَ خوشخطی ضد- خراب خط- بدخلق:(بَد-خلق)اسم صفت- واحد- مذکر- بدخویه- بدمزاجه- بدخونی لرونکے- پوچ خُلے- (م- فارسی)- بدخلقی: (بَد-خُل-قی)اسم- مؤنث- بدخونی- بدمزاجی- دَ بدخُلق کېدو حالت- بدخلے:(بَد-خُ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بده خُله لرونکے- کنځل مار- وران خُلے- بدزبان- پوچ خُلے- (۲)چیچونکے سپے- وران سپے- داړونکے- بدخو:(بَد-خو)اسم صفت- مذکر- بدخونی لرونکے- بدخویه- دَ خرابو عادتونو خاوند- بدخوا:(بَد-خوا)اسم صفت- بدغښتونکے- دَ خېرخوا ضد- دښمن- جمع بدخواهان- (م- فارسی)- بدخوابی:(بَد-خوا-بی)اسم- واحد- مؤنث- بې ارامی- بدخوبی- (افغانستان)- بدخواهی:(بَد-خوا-هی)اسم- واحد- مؤنث- بدغښتنه- دَ بدخواه کېدو حالت- دښمنی- (م- فارسی)- بدخولے:(بَد-خو-لے) اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بدخلے- بدخونده:(بَد-خون-ده) اسم صفت- مذکر- خراب خوند لرونکے- بدذائقه- بده مزه لرونکے- بې خونده- بې مزې- بدخوندی:(بَد-خون-دی)اسم- واحد- مؤنث- دَ بدخونده کېدو حالت- وګورئ بدخونده- بدخوو:(بَد-خوو)اسم- واحد- مذکر- بدخواهی- دښمنی- بدخویه:(بَد-خو-یه)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بدخو- بدخونی:(بَد-خو-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بدخُلقی- بدخېره:(بَد-خې-ره)اسم صفت- واحد- مذکر- فېض نۀ رسونکے- فائده نۀ ورکونکے- بدخېری:(بَد-خې-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ بدخېره جوړېدو حالت- بددعا:(بَد-دُ-عا)اسم- واحد-مؤنث- ښېره- ازار- دَ خدایُ نه دَ چا دَ نقصان سوال- (ش- فارسی)- بددل:(بَد-دل)

اسم صفت- واحد- مذکر- مایوس- حوصله ماتے- مات زړے- جمع بددلی- بددلی:(بَد-د-لی)اسم- مؤنث- دَ بددل کېدو حالت- زړۀ ماتېدنه- حوصله ماتېدنه- (م- فارسی)- بددماغ:(بَد-د-ماغ)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ بدو مغزو خاوند- تریخ- کبرژن- مغرور- بدخویه- تېز طبیعته- بددماغه- مؤنث بددماغه- جمع مؤنث بددماغې- (م- فارسی)- بددماغی:(بَد-د-ما-غی)اسم- واحد- مؤنث- غرور- کبر- لوئی- دَ بددماغه کېدو حالت- (م- فارسی)- بددیانت:(بَد-دی-یا-نت) اسم صفت- دیانت نۀ لرونکے- ټګ- درغل- (م- فارسی)- بددیانتی: (بَد-دی-یا-ن-تی)اسم- واحد- مؤنث- ټګی- درغلی- دَ دیانت نۀ لرلو حالت- دَ بددیانت کېدو حالت- بدډوله:(بَد-ډو-له)اسم صفت- واحد- مذکر- بدرنګه- بدشکله- بدذات:(بَد-ذات)اسم صفت- واحد- مذکر- کم ذات- خراب ذات لرونکے- کم اصل- رذیل- کچر- کمینه- (م- فارسی)- بدذاتی:(بَد-ذا-تی)اسم- واحد- مؤنث- کم اصل توب- کمینه توب- دَ بدذات کېدو حالت- بدذائقه:(بَد-ذا-ئ-قه)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ بدخونده- بدذهن:(بَد-ذ-هن)اسم صفت- واحد- مذکر- کم دماغه- ناپوهه- کم عقل- بدذهنی:(بَد-ذه-نی)اسم- مؤنث- کم دماغی- ناپوهی- کم عقلی- دَ بدذهنه کېدو حالت- بدراه:(بَد-راه) اسم صفت- واحد- مذکر- بدرهه- بې لارې- لۀ لارې اوړېدلے- ګمراه- پۀ بده لار تلونکے- (م- فارسی)- بدرنګ:(بَد-رنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ خوش رنګ ضد- بدشکل لرونکے- جمع بدرنګی- مؤنث بدرنګه- جمع مؤنث بدرنګې- بدرنګی:(بَد-رنګ-ګی)اسم- مؤنث- (۱)بې خوندی- بدمزګی- (۲)بد حالی- (۳)بې عزتی- سپکوالے- خرابتیا- خرابی- (۴)دَ تاش یوه لوبه- طرب کښې هغه حالت چې چاسره دَ رنګ پاڼې نۀ وی- بدرو:(بَد-رو)اسم صفت- مذکر- بدمخے- خراب شکل لرونکے- وران شکل لرونکے- بدزبان:(بَد-ز-بان)اسم صفت- مذکر- سخاخلے- کنځل مار- ستغ ژبے- بدکلامه- بدژبے- پوچ خُلے- دَ ترخې ژبې خاوند- (م- فارسی)- بدزبانی:(بَد-ز-با-نی)اسم- واحد- مؤنث- بده خُلۀ- کنځل- خرابه ژبه- دَ بدزبان کېدو حالت- بدزړے:(بَد-زۀ-ړے) اسم صفت- پۀ زړۀ خیرن- بدنیته- دَ بدزړۀ لرونکے- کینه ګر- جمع بدزړی- مؤنث بدزړې- بدژبے:(بَد-ژۀ-بے)اسم صفت- واحد- مذکر- بدزبان- دَ ترخې ژبې خاوند- جګړمار- پوچ خُلے- بې واکه- ستغ ژبے- بدسترګے:(بَد-ستر-ګے)اسم صفت- مذکر- (۱)بې حیا- سپین سترګے- بې شرمه- وران سترګے- (۲)هغه څوک چې نظر ئې لګی- بدسرشت: (بَد-سه-رشت)اسم صفت- مذکر- بدفطرت- بداصل- بدطینت- (م- فارسی)- بدسرے:(بَد-سه-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خراب سر لرونکے- (۲)کبرژن- مغرور- (۳)لېونے- بې وقوف- کم عقل- احمق- پۀ خبره نۀ پوهېدونکے- بدسارے- (۴)بې غېرته- سرکوزے- بدسګال: (بَد-سه-ګال)اسم صفت- مذکر- بدخواه- دښمن- بدغښتونکے- بدسلوک:

"زبر"(خ-بڼه-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "ۀ"(ږو-بې-دۀ)

جمع بېتې-

بېتي:(بې-تي)اسم صفت- بېت- جاسوس- ځارو- خبررسان- مخبر- پچوچي-

بېتي:(بې-تي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بياتي-

بېټ:(بېټ)اسم- واحد- مذکر- د کرکټ ځوباړے- (م- انګريزي)-

بېټ:(بېټ)اسم- واحد- مذکر- ملاتړ- کومک- مرسته- امداد- مدد- لاس کونه- ننګه- لنګه-پُشتي-

بېټ:(بېټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)وچ- بې اُبو- بټ- وچ بيابان- مېره- (۲)د بېټيو يو قسم لوبه- د اړوکو يوه لوبه- د سپېشتو يوه لوبه-

بېټ:(بېټ)اسم صفت- بټ- چو- ناست (څناور) په ګونډو- خې- ګونډه شوے- (م- هندی بېټهنا- کښيناستل)-

بې ټانګه:(بې-ټانګ-ګه)اسم صفت- څشے- پوچ- چټي- عبث- فضول- (افغانستان)- (م- ټانګ- وخت)-

بېټرى:(بېټ-ري)اسم- واحد- مؤنث- ټارچ- چورباتي- لاس کښې د ګرځولو د سيلونو په ذريعه رڼا ورکونکې آله- (م- انګريزي)-

بېټک:(بې-ټک)اسم- واحد- مذکر- د کور سره جُخت د مېلمنو د پاره جوړه کوټه يا کمره- حجره- ډېره- (م- هندی)-

بېټکے:(بې-ټک-کے)اسم- واحد- مذکر- د بېټک اسم تصغير- وګورئ بېټک-

بېټول:(بې-ټ-ول)مصدر متعدی- بېټ نه مصدر- په ګونډو کول- چو کول- مجازاً شکست ورکول-

بېټون:(بې-ټ-ون)حاصل مصدر- وګورئ بېټول-

بېټونکے:(بې-ټ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېټونکى- مؤنث بېټونکې- وګورئ بېټول-

بېټونګ:(بې-ټ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ بېټول-

بېټونه:(بې-ټ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بېټول-

بېټه:(بې-ټه)اسم- واحد- مؤنث- کل- کنجاړه- خنجاړه- د تېلو د ګاڼي نه راوتے پوګ-

بېټه:(بې-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د غرهٔ لمن- غنډى- (۲)شپول- پندغالے- خاوال- د رمې د پندولو ځاے- د ګډو د رمې د ارام او ودرولو ځاے-

بېټه:(بې-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دبه- ډبه- لهٔ څرمنې جوړ د تېلو د ساتلو لوښے-

بېټېدل:(بې-ټې-دل)مصدر لازم- چو کېدل- خې کېدل- په ګونډو کېدل- د څناور کښيناستل-

بېټېدنه:(بې-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بېټېدل-

بېټېدونکے:(بې-ټې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېټېدونکى- مؤنث بېټېدونکې- وګورئ بېټېدل-

بېټېده:(بې-ټې-دهٔ)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ بېټېدل-

بېتی:(بې-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د سرو زرو امېل کښې پېيلې مرې-

بېجور:(بې-جور)اسم- واحد- مذکر- د لمنځې يو قسم ونه چې د عمارتونو په جوړولو کښې پکار راځي-

بېجي:(بې-جي)اسم صوت- بېجي- د بی بی جی نه مخفف- د خطاب تورے-

بېخانتوب:(بې-خان-توب)اسم- (۱)لهٔ خان نه ناخبري-بېخاني- (۲)کمزوري- (۳)بېهوشي-

بېخانوکے:(بې-خا-نو-کے)اسم صفت- ډنګر- کمزورے- مانده- (افغانستان)-

بېخانه:(بې-خا-نه)اسم صفت- (۱)لهٔ خانه بې خبره- مدهوش- (۲)کمزورے- مانده- (افغانستان)-

بېخاني:(بې-خا-ني)اسم- وګورئ بېخانتوب-

بېخايتوب:(بې-خاې-توب)اسم- بې ځائي- بې کوري-

بېخايه:(بې-خا-يه)اسم صفت- (۱)چې په ځاې نهٔ وي- (۲)د لاس پېښو د مړوکو وتنه- (۳)ناموزون- فضول- عبث- څشے- (۴)بې کوره- بې مېنې- بې مسکنه- (۵)بې ګودره- (دوېمه معنٰی کښې اسم)-

بېخاني:(بې-خا-ني)اسم- وګورئ بېخايتوب-

بېخل:(بې-خل)اسم- واحد- مذکر- ټکر- بېخله- شنډى- د کاڼو او لوټو نه جوړه دونکاچه يا پُشتي چې د سيلاب اُبهٔ پرې تمبولے شي- د کاڼو دېوال- سوپلے- جمع بېخلې بېخلونه-

بېخل:(بې-خل)اسم- واحد- مذکر- ګرونج- ګرونجے- د منګو يا مشکونو د پاره جوړ ځاې-

بېخله:(بې-خهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- ټکر- وګورئ بېخل ۱-

بېخنخه:(بې-خن-خه)اسم صفت- ناراسته- سست- لټ- الځى- ناړامه- (افغانستان)-

بېخه:(بې-خه)اسم- واحد- مؤنث- د لحد تبى مغه وړده او پلنه تيره چې په لحد ايښولے شي- جمع بېخې- (افغانستان)-

بېچانه:(بې-چا-نه)اسم- واحد- مؤنث- په کټ يا فرش د غوړولو څادر- جمع بېچانې- (م- هندی)-

بېچاوڼ:(بې-چا-وڼ)اسم- واحد- مذکر- په کټ د غوړولو لوئ څادر چې عام طور سره سپين وی- (م- هندی)-

بېچاوڼه:(بې-چاؤ-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بستره- (۲)د کټ څادر- پالنګ پوش- جمع بېچاوڼې-

بېچلر:(بېچ-لر)اسم- واحد- مذکر- اصل معنٰی بالغ- اصطلاحاً بکلوريا- د يونيورسټى ورومبى ډګرى چې د څوارلسم جماعت نه پس ته ورکولے شي- (م- انګريزي)-

بېچون:(بې-چون)اسم صفت- (۱)د خداې پاک يو صفتي نوم- (۲)چې مثال نهٔ لري-

بېچونه:(بې-چو-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بېچاوڼه-

بېچي:(بې-چي)اسم صوت- (۱)د بې بې جی مغفن- (۲)د قرآن شريف

ى (څى-رل)، ې (مې-ره-ول)، ئ (پيا-لې)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ښېونکې استاذه- (۳)مشرې ښځې ته د خطاب توری- بیجی- (دوېمه معنی کښې اسم)-

بېڅه:(بې-څه)اسم- واحد- مؤنث- یو غرنے واښهٔ چې کړېږ بزې ئې خوری- جمع بېڅې-

بېخرته:(بې-خَر-ته) اسم صفت- ډېر زیات- پهٔ وزن، مقدار یا شمېر کښې ډېر زیات-

بېخرتی:(بې-خَر-تي)اسم- مؤنث- د بې خرته کېدو حالت-

بېخرتی:(بې-خَر-تي)اسم- بې ځایه- بې موقعې کار- بې وخته کار- (افغانستان)-

بېخور:(بې-خُ-وَر)اسم صفت- (۱)بېخ لرونکے- بنیادی- (۲)کوناټور- هغه څوک چې د بدن لاندې حصه ئې غټه وی-

بېخول:(بې-خول)اسم صفت- مذکر- بدشکل- بدرنګ- کمزورے- اپایج-

بېخوله:(بې-خو-له)اسم صفت- مذکر/مؤنث- بدشکله- بدرنګه- بدقواره- بې څېرې-

بېخی:(بې-خي)اسم صفت- لهٔ بېخه- بالکل- قطعي- لهٔ مونډه- (م- د فارسي بېخ نه مشتق)-

بېد:(بېدّ)اسم- واحد- مذکر- (۱)وله- خروله- یو قسم وُنه چې څانګې ئې ډېرې لچکدارې وی- (۲)د بسنت وُنه- نباتاتی نوم کېلې مس روټنګ- (۳)د بېد نه جوړه د ګرخولو لښته- (۴)د بېد پوټکے چې کرسی وغېره پرې بڼولے شی- (م- فارسی)-

بېداد:(بې-دادْ)اسم صفت- (۱)ویښ- د اودهٔ ضد- د غافل ضد- (۲)چالاک- هوښیار- تکړه- (۲)باخبر- مؤنث بېداده- جمع مؤنث بېدادې- (م- فارسی)-

بېداروَل:(بې-دا-ر-وَل)مصدر متعدی- (۱)ویښول- لهٔ خوبه پاڅول- (۲)هوښیاروَل- پوهول- خبردارے ورکول-

بېدارون:(بې-دا-رَ-وُن)حاصل مصدر- وګورئ بېداروَل-

بېدارونکے:(بې-دا-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېدارونکی- مؤنث بېدارونکې- وګورئ بېداروَل-

بېدارونګ:(بې-دا-رَ-وُنګ)حاصل مصدر- وګورئ بېداروَل-

بېدارونه:(بې-دا-رَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بېداروَل-

بېدارونے:(بې-دا-ر-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېدارونی- مؤنث بېدارونې- وګورئ بېداروَل-

بېداره بېداری:(بې-دا-ره-بې-دا-ري)اسم- ښهٔ ویښتوب- د ښهٔ بېدار کېدو حالت-

بېداری:(بې-دا-ري)اسم- مؤنث- (۱)ویښتوب- ویښه- بېداروالے- (۲)چالاکی- تکړه والے-

بېدارېدل:(بې-دا-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)ویښېدل- لهٔ خوبه پاڅېدل- (۲)پوهېدل- خبردارېدل-

بېدارېدن:(بې-دا-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ بېدارېدل-

بېدارېدنګ:(بې-دا-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ بېدارېدل-

بېدارېدنه:(بې-دا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ بېدارېدل-

بېدارېدونکے:(بې-دا-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېدارېدونکی- مؤنث بېدارېدونکې- وګورئ بېدارېدل-

بېدارېدهٔ:(بې-دا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ بېدارېدل-

بې دماغه:(بې-د-ما-غه)اسم صفت- بددماغه- تریخ- خشنګ- خشکی-

بېدو:(بې-دُو)اسم صفت- بېدونے- کټ مټ- موبهو-

بېدونے:(بې-دُو-نے)اسم صفت- وګورئ بېدو-

بېده:(بې-ده)اسم- واحد- مؤنث- وچ واښهٔ- لموره- د وښوکېډی- وچ شوتل یا رشقه-

بېدیا:(بېدْ-یا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وُچه مېره- بیابان- دشت- صحرا- (۲)بېرون- بهر- د باندې- ورچنې- ورشنې- جمع بېدیاګانې-

بېدیاکوتره:(بېدْ-یا-کو-تَ-ره) اسم- واحد- مؤنث- ځنګلی کوتره- د غرهٔ کوتره- ډاګی کمتره- (افغانستان)-

بېدیانی کوتره:(بېدْ-یا-نې-کو-تَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بېدیاکوتره-

بېدیانے:(بېدْ-یا-نے)اسم صفت- (۱)پهٔ صحرا بیابان کښې وُسېدونکے- سارانے- صحرائی- صحرانے- (۲)بهرنے- د باندینے- (۳)پردے- لهٔ بل ځایه راغلے- بېګانه- مؤنث بېدیانې- (افغانستان)-

بېدی بېدیا:(بې-دی-بېدْ-یا)اسم صفت- خشکه مېره- غېر اباده- ویجاړه- لوګ بیابان- چولی بیابان-

بېډ:(بېډْ)اسم- واحد- مذکر- بستره- (م- انګریزی)-

بېډبه:(بې-ډ-به)اسم صفت- بدتمیز- کم عقل- نادان- بې طریقې-

بېډروم:(بېډْ-رُوم/بېډ-روم)اسم- واحد- مذکر- د اودهٔ کېدو کمره-

بېډمنټن:(بېډْ-من-ټن)اسم- واحد- مذکر- د ټېنس پهٔ شان یوه لوبه چې پهٔ تپه او چړیا کیږی- (م- انګریزی)-

بېړن:(بې-ړن)اسم صفت- کجے- کږې پښې لرونکے- اړے کړے- چوړے- شل پاپو- کچل- کچے-

بېړون:(بې-ړون)اسم- واحد- مذکر- د ازغکی بوټے-

بېړون:(بې-ړون)اسم صفت- بدرنګه- بدشکله- ناتراشلے- بې ډوله-

بېړوے:(بې-ړهٔ-وے)اسم صفت- مذکر- بې پروا- بې فکره- بې باکه- مؤنث بې ړوې- (افغانستان)-

بېړی:(بې-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د زنکانهٔ سترګه- سپشته- سپښته- بجله-

بېرامه:(بې-را-مه)اسم صفت- ظالم- زیاتی کونکے- (م- راتلونکے ټکے)-

بېرامی:(بې-را-مي)اسم- مؤنث- ظلم- زیاتے- (م- شاید لهٔ "بې رحمی" ځنې

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

مشتق)-

بېران:(بې-ران)اسم صفت- (۱)غیر اباد- ویران- کنډر- وران- برباد- خراب- ویجاړ- (۲)بې هوشه- بې حسه- ضعیف- (افغانستان)-

بېرانول:(بې-را-ن-ول)مصدر متعدی- (۱)ورانول- بربادول- خرابول- ګډول- (۲)بې هوشه کول- بې حسه کول- بې خوده کول- ضعیفول-

بېرانون:(بې-را-ن-ون)حاصل مصدر- وګورئ بېرانول-

بېرانونکے:(بې-را-ن-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېرانونکی- مؤنث بېرانونکې- وګورئ بېرانول-

بېرانونګ:(بې-را-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ بېرانول-

بېرانونه:(بې-را-ن-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ بېرانول-

بېرانه:(بې-را-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د بېران مؤنث- خرابه- ویجاړه- ویرانه- کنډواله-

بېراني:(بې-را-نې)اسم- (۱)بېهوشي- بې خودي- بې حسي- (۲)خرابي- وراني- ویجاړي- ګډوډي- (۳)بد یوري- بدمعامله ګی-

بېرانېدل:(بې-را-نې-دل)مصدر لازم- (۱)نړېدل- ورانېدل- ګډېدل- ویجاړېدل- ړنګېدل- (۲)بې هوشه کېدل- بې خوده کېدل- بې حسه کېدل- (افغانستان)-

بېرانېدلے:(بې-را-نې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع بېرانېدلي- مؤنث بېرانېدلې- وګورئ بېرانېدل-

بېرانېدن:(بې-را-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ بېرانېدل-

بېرانېدنګ:(بې-را-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ بېرانېدل-

بېرانېدنه:(بې-را-نې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ بېرانېدل-

بېرانېدونکے:(بې-را-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېرانېدونکی- مؤنث بېرانېدونکې- وګورئ بېرانېدل-

بېرانېدونے:(بې-را-نې-دو-نے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع بېرانېدوني- مؤنث بېرانېدونې- وګورئ بېرانېدل-

بېرانېده:(بې-را-نې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ بېرانېدل-

بېرته:(بېر-ته)اسم صفت- بیرته- خلاص- برخېره- پرانستے- (کول کېدل مصدرونه)-

بېرړا:(بېر-ړا/بېر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- سپېر کنډه- سپېر کنډکه- جل خراړه- خړاکه- خړرنګ لرونکي مرغی-

بېرړه:(بېر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وړه غز- وړه اکوړ-

بېرسټر:(بې-رس-ټر)اسم- برطانیه کښې د قانون له انونو (INNS) نه فارغ شوے عدالتی وکیل- (م- انګریزی)-

بېرسټرتوب:(بې-رس-ټر-توب)اسم- د بېرسټر کېدو حالت او پېشه- وکالت- بېرسټري-

بېرسټري:(بې-رس-ټه-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بېرسټرتوب-

بېرغ:(بې-رغ)اسم- واحد- مذکر- پرچم- جنډه- توغ- نشان- جمع بېرغونه-

بېرګال:(بېر-ګال)اسم- واحد- مذکر- د غوا یا غوئي د څرمنې مشک- ژےخیک- (افغانستان)-

بېرندوکے:(بې-رن-دو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- بزدل- پارن- ویرېدونکے-

بېرنجےتوت:(بې-رن-جے-توت)اسم- واحد- مذکر- یو قسم توت- (افغانستان)-

بېرنګ:(بې-رنګ)اسم صفت- هغه د ډاک خط چې مطلوبه ټکټ پرې نه وی لګېدلے او په جرمانه کښې ې یو په دوه پېسې وصولولے شی- (م- انګریزی)-

بېرنګ:(بې-رنګ)اسم- واحد- مذکر- د موټرو، لارو، پکو او داسې نورو مشینونو کښې استعمالېدونکې ګراری چې په چرو ګرځی- (م- انګریزی)-

بېرنه:(بې-ره-نه)حاصل مصدر- پارېدنه- ویرېدنه-

بېرڼ:(بې-رڼ)اسم- واحد- مذکر- غرنیزه رشقه- (افغانستان)-

بېرو:(بې-رو)اسم صفت- (۱)بې شرمه- بې حیا- شوخ- بدلحاظه- (۲)د چا سفارش نه منونکے- بې مخه- (۲)بې رویه- بې ریا- مخلص-

بېروزه:(بې-رو-زه)اسم- واحد- مؤنث- ګنده بېروزه- د نښتر ژاوله- ژوغله- یو قسم سلېښناکه ماده چې د نښتر له ونې پیدا کیږی او د تارپین تېل تری ویستلے شی-

بېرول:(بې-ر-ول)مصدر متعدی- ویرول- پارول-

بېرولے:(بې-ر-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع بېرولي- مؤنث بېرولې- وګورئ بېرول-

بېرومیټر:(بې-رو-مې-ټر)اسم- بادنما- د باد ارخ او دباؤ معلومونکې یوه آله- (م- انګریزی)-

بېرون:(بې-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ بېرول-

بېرون:(بې-رون)اسم صفت- (۱)بهر- ورچنې- ورشنې- (۲)څرګند- ښکاره- بربنډ- برخېره- (۳)وبستلے- (م- فارسی)- (افغانستان)-

بېرونکے:(بې-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع بېرونکی- مؤنث بېرونکې- وګورئ بېرول-

بېرونګ:(بې-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ بېرول-

بېرونه:(بې-ر-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ بېرول-

بېروني:(بې-رو-نی)اسم صفت- بهرني- څرګند- ښکاره- (م- فارسی)-

بېرونے:(بې-ره-وو-نے)اسم صفت- جمع بېروني- مؤنث بېرونې- وګورئ بېرول-

بېرونه:(بې-رو-نه)اسم صفت- بې قاعدې- بې ترتیبه- غیر منظم- (افغانستان)-

بېروني:(بې-رو-نی)اسم- بې قاعدګی- بې ترتیبي- بې نظمی- (افغانستان)-

بېروه:(بې-روه)اسم- کبل-

پاړسیوان:(پاړ-سی-وان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پارسی وان-

پاړکے:(پاړ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)قطع- شعر- بیت- ټوټه (افغانستان)- (۲)فال- بخت- طالع- جمع پاړکی-

پاړو:(پا-ړو)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې د میزری ځپلی پرې جوړولے شي- جمع پاړوګان-

پاړو:(پا-ړو)اسم صفت- واحد- مذکر- پاړوګر- د مارانو ووده لرونکے- (۲)دم- ووده- پاړ- (اسم)- (۳)منافق- (۴)بدچلن- چلباز- جمع پاړوګان-

پاړوتوب:(پا-ړو-توب)اسم- پاړوګری- پاړوګرتوب- د پاړو کسب-

پاړوګر:(پا-ړو-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- پاړیګر- پوړیګر- مارګیر- (۲)جادوګر- د معنی د پاره وګورئ پاړو-

پاړوګری:(پا-ړو-ګۀ-ری)اسم- (۱)د مارانو د نیولو کار- مارګیری- ووده او دم سره مار نیونه- مار نیونه- (۲)منتر- دم- جادوګری-

پاړول:(پا-ړ-ول)مصدر- غلول- جادو کول-

پاړولے:(پا-ړ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاړولي- مؤنث پاړولې- وګورئ پاړول-

پاړون:(پا-ړ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پاړول-

پاړونکے:(پا-ړ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاړونکي- مؤنث پاړونکې- وګورئ پاړول-

پاړونګ:(پا-ړ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پاړول-

پاړونه:(پا-ړ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاړول-

پاړه:(پا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د دړو کیلو پۀ منځ کښې د اړولو نه پاتې شوې د پټی حصه- (۲)پۀ کار کښې نیمګړتیا- (۳)د جامو زینځلو تخته- (۴)لویه غلطی- د بدناموسی کار- (۵)هغه کوږ لرګے چې بغرۍ ته پرې شولې راړولے شی- (۶)ووده- دم درود- (۷)د لرګی یوم- راشپېل- راشبېل- (۸)فال- بخت- (۹)د نانبایانو سیخ- (۱۰)الفبا-

پاړه:(پا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پاړ- جمع پاړې-

پاړه:(پا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د مدرسې د ماشومانو د یادولو د پاره د ځنو عددونو د ضرب قاعده- (م- هندی پهاړا)-

پاړه:(پا-ړه)اسم- واحد- مونث- پېره- وار- ځل- پاړه- جمع پاړې-

پاړېدل:(پا-ړې-دل)مصدر- غلېدل- دوګه کېدل-

پاړېدن:(پا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پاړېدل-

پاړېدنګ:(پا-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پاړېدل-

پاړېدنه:(پا-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاړېدل-

پاړېدونکے:(پا-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاړېدونکی- مؤنث پاړېدونکې- وګورئ پاړېدل-

پاړېدۀ:(پا-ړې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پاړېدل-

پاړی:(پا-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- د موسی یو قسم- غرڅه- (م- هندی)-

پاړی:(پا-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- پاړ- پړی- د کاڼو، تیږو او خښتو وغېره پۀ ترتیب سره د یو بل د پاسه ایښوے شوے ډېرے-

پاړی:(پا-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- د هندوانې، خټکی ترازه- چنډه- تیندړه-

پازاب:(پا-زاب)اسم- (۱)پۀ عذاب- پۀ تکلیف- (۲)تکلیف ورکونکے- (م- پۀ-عذاب)-

پازابول:(پا-زا-ب-ول)مصدر- تکلیف ورکول- عذاب ورکول-

پازابون:(پا-زا-ب-ون)حاصل مصدر- وګورئ پازابول-

پازابونکے:(پا-زا-ب-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پازابونکی- مؤنث پازابونکې- وګورئ پازابول-

پازابونه:(پا-زا-ب-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پازابول-

پازابېدل:(پا-زا-بې-دل)مصدر لازم- پۀ عذاب کېدل- پۀ تکلیف کښې کېدل-

پازابېدن:(پا-زا-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پازابېدل-

پازابېدنه:(پا-زا-بې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پازابېدل-

پازابېدونکے:(پا-زا-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پازابېدونکی- مؤنث پازابېدونکې- وګورئ پازابېدل-

پازند:(پا-زند)اسم- د زردشتی مذهب د کتاب "ژند" تفسیر او شرح- پاژند-

پازوال:(پاز-وال)اسم صفت- تاثیر لرونکے- اثر لرونکے- پازه وال- (افغانستان)-

پازه:(پا-زه)اسم- تاثیر- اغېزه- اثر- (۲)چالاکی- تُندی- تېزی- (۳)جرأت- مړانه- زړورتیا- (۴)تته رڼا- (۵)الحاظ- (۶)شرم- حیا- (۷)نصیحت (کول مصدر)-

پازه وال:(پا-زه-وال)اسم صفت- (۱)خدمتګار- فعال- (۲)معتمد- (۳)منشی- محرر- لیکونکے- پاژوال-

پازیکه:(پا-زی-که)اسم صفت- پاکیزه- صفا- خالص- سوترا- (پاکیزه عامیانه)-

پازیکه:(پا-زی-که)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- پاک- پاکیزه- پاک و صاف- سپېځلے- سپین سپېځلے- پۀ کردار او خوئی خصلت پاک- (پاکیزه عامیانه)-

پازېب:(پا-زېب)اسم- واحد- مؤنث- پېنزېب- پایزېب- د پښو د سپینو زرو یو پسول-

پاژند:(پا-ژند)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پازند-

پاژوال:(پاژ-وال)اسم- واحد- مذکر- (۱)خادم- خدمتګار- نوکر- (۲)خوشامدګر-

پاژوالی:(پاژ-وا-لی)اسم- د پاژوال کېدو حالت- وګورئ پاژوال-

پاژوالیتوب:(پاژ-وا-لی-توب)اسم- پاژوالی کونه- وګورئ پاژوالی-

پاژوله:(پا-ژو-له)اسم- واحد- مؤنث- لۀ وړغنی جوړې جرابې- د وړغنی

ماسېږ-

پاړ:(پاړ)اسم- واحد- مذکر- ړېون- پړسوب- پاړسوب- هغه بيماري چې سر پکښې خارښتيږي او پړسوب کوي- سرپاړې-

پاړول:(پا-ړ-ول)مصدر متعدي- ړېول- پړسول-

پاړون:(پا-ړ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پاړول-

پاړونکے:(پا-ړ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاړونکي- مؤنث پاړونکې- وګورئ پاړول-

پاړونه:(پا-ړ-ؤ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاړول-

پاړوے:(پاړ-وے)اسم- واحد- مذکر- غرنے پياز- پيازکے- پيازګ- نباتاتي نوم د پاړه وګورئ پيازکے-

پاړه:(پا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دم- د دم يا منتر اثر- د کوډو، دم او زودي تاثير- (۲)لۀ ځلې هوا وکښنه-

پاړېدل:(پا-ړې-دل)مصدر لازم- پړسېدل- ړېدل- خارښتېدل او پړسېدل-

پاړېدلے:(پا-ړې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاړېدلي- مؤنث پاړېدلې- وګورئ پاړېدل-

پاړېدن:(پا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پاړېدل-

پاړېدنه:(پا-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاړېدل-

پاړېدونکے:(پا-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاړېدونکي- مؤنث پاړېدونکې- وګورئ پاړېدل-

پاړېدۀ:(پا-ړې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ پاړېدل-

پاس:(پاس)اسم صفت- پورته- وچت- بره- د پاسه- جګ- مسک- زيات-

پاس:(پاس)اسم- واحد- مذکر- د چونې او تېلو نه جوړ د خارږيو د پاره د خارښت ملهم-

پاس:(پاس)اسم- واحد- مذکر- لحاظ- خاطر- پاسداري- (م- فارسي)-

پاس:(پاس)اسم- واحد- مذکر- اجازت نامه- راه داري- (جمع پاسونه)- (۲)کامياب- (جمع نۀ لري)- (۳)پۀ خنو لوبو لکه فټ بال، هاکي، والي بال وغيره کښې لۀ يو لوبغاړي لۀ خوا بل ته غونډسکه حواله کونه- (م- انګريزي)-

پاسبان:(پاس-بان)اسم- واحد- مذکر- پاسوان- څوکيدار- پيره دار- دربان- ساتونکے- حفاظت کونکے- جمع پاسبانان- (م- فارسي)-

پاسباني:(پاس-با-ني)اسم- واحد- مؤنث- پاسواني- څوکيداري- ساتنه- حفاظت کونه- (م- فارسي)-

پاسپوټ:(پاس-پوټ)اسم- واحد- مذکر- لۀ ملکه د بهر تللو د اجازت نامې کتابچه- پاسپورټ- جمع پاسپوټونه- (م- انګريزي)-

پاسپورټ:(پاس-پورټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پاسپوټ- (م- انګريزي)-

پاست:(پاست)اسم- واحد- مذکر- منت- احسان- مننه- تشکر- شکريه- (م- فارسي)-

پاسته:(پاس-ته)تابع مهمل- د ناسته تابع مهمل- د ناسته سره يو ځائ د ګپ شپ، دوستۍ معنیٰ ورکوي-

پاستۀ:(پاس-تۀ)اسم صفت- د پوست جمع-

پاستے:(پاس-تے)اسم- واحد- مؤنث- څپاتي- چپاتي- (افغانستان)- څپېټے- مکے- لوکرے- ډېره نرمه او ډېره پلنه ډوډۍ- جمع پاستي- (ش- هندي- چپاتي)-

پاسداري:(پاس-دا-ري)اسم- لحاظ ساتنه- پاس ساتنه-

پاسدل:(پاس-دل)مصدر- ژوند کول- وخت تېرول-

پاسدلے:(پاس-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاسدلي- مؤنث پاسدلې- وګورئ پاسدل-

پاسدن:(پاس-دن)حاصل مصدر- وګورئ پاسدل-

پاسدنګ:(پاس-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پاسدل-

پاسدنه:(پاس-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاسدل-

پاسدونکے:(پاس-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاسدونکي- مؤنث پاسدونکې- وګورئ پاسدل-

پاس دپاسه:(پاس-د-پا-سه)فعل (مرکب)- بهر پۀ بهر- لرې لرې- بيل بيل- پټ پۀ پټه- غلے غلے-

پاسره:(پاس-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ډونګه- سيومه- ذخيره- بچت- پانګه- پنګه- سکه- (۲)بوکرے- بوکرے- بکرے- (۳)د پيو هغه جمع چې ښځه ئې د خازند نه پټه کوي- (۴)وجه- سبب- باعث-

پاسره کر:(پاس-ر-کر)اسم فاعل صفت- د پاسره سره متعلق- پاسره کونکے- وګورئ پاسره- جمع پاسره کري- مؤنث پاسره کره-

پاسره کري:(پاس-ر-کۀ-ري)اسم- د پاسره کر جوړېدو حالت- وګورئ پاسره کر-

پاسره وال:(پاس-ر-وال)اسم فاعل صفت- وګورئ پاسره کر- جمع پاسره والان-

پاسل:(پا-سل)مصدر- پاسلل- ښېګړه کول- احسان کول- احسان مند کول- (۲)نارونغه څاروی مالش کول- خيال ساتل- (۳)سپارل- حواله کول-

پاسلل:(پاس-لل)مصدر- وګورئ پاسل-

پاسللے:(پاس-لۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاسللي- مؤنث پاسللې- وګورئ پاسلل-

پاسلنه:(پاس-لۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاسلل-

پاسلودل:(پاس-لو-دل)مصدر- (۱)سپارل- حواله کول- پاسل- پاسلول- (۲)ښېګړه کول- احسان ارزل- (۳)منل- تسليمول-

پاسلودنه:(پاس-لو-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاسلودل-

پاسلول:(پاس-ل-ول)مصدر- وګورئ پاسلودل-

پاسلونے:(پاس-ل-وو-نے)اسم فاعل- وګورئ پاسلودل-

پاسلونے:(پاس-لو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- سپارلے- حواله کړے- هغه

ئ (څې-رل)، ي (مې-ره-ول)، ے (پيا-لے)، ې (تن-دې) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ځوک چې په چا د ځهٔ شي سپارښتنه وکړي-

پاسلوینه:(پاس-لو-یڼه-نه)حاصل مصدر- پاسلونه- وګورئ پاسلودل-

پاسلېیل:(پاس-لې-یِل)مصدر- زباړول- وریادول- شرمنده کول- د نیکی یا ښېګړي بار بار یادول-

پاسلېیلے:(پاس-لې-یهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاسلېیلي- مؤنث پاسلېیلې- وګورئ پاسلېیل-

پاسلېینه:(پاس-لې-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاسلېیل-

پاسلېیونکے:(پاس-لې-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاسلېیونکي- مؤنث پاسلېیونکې- وګورئ پاسلېیل-

پاسلے:(پا-سهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاسلي- مؤنث پاسلې- وګورئ پاسل-

پاسنه:(پا-سهٔ-نه)اسم- (۱)لحاظ- رعایت- مراعت- (۲)احسان مندی-

پاسنی:(پا-سه-نی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- د پاسنی مؤنث- وګورئ پاسنے-

پاسنی:(پا-سهٔ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د ماشومانو یو قسم بیماري-

پاسنی:(پا-سه-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ابره-

پاسنے:(پا-سَ-نے)اسم صفت- (۱)برنے- د بره- لوړ- (۲)د وچتې علاقې وسېدونکے- د غرنیزې علاقې وسېدونکے- جمع پاسني- مؤنث پاسنۍ-

پاسو:(پا-سُو)اسم صفت- (۱)خاکسار- غلے- عاجز- کمینه- (۲)پست- ټیټ- لوڅک- لوچه- رذیل- ادنی- جمع پاسوګان-

پاسوال:(پاس-وال)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ساتونکے- څوکیدار- محافظ- حفاظت کونکے- (۲)بادشاه-

پاسوان:(پاس-وان)اسم فاعل/صفت- وګورئ پاسبان-

پاسوانی:(پاس-وا-نی)اسم- مؤنث- وګورئ پاسباني-

پاسه:(پا-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اصلي او سوچه سرهٔ زر چې لهٔ هېڅ قسمه ګډون پکښې نهٔ وي شوے- (۲)کره- روغ- اعتباري- رښتونے- (اسم صفت)- (م- هندي)-

پاسه:(پا-سه)صفت- پاس- پورته- وچت-

پاسی بان:(پا-سی-بان)اسم فاعل/صفت- پاسبان- نګهبان- پاسوان- څوکیدار- حفاظت کونکے-

پاسی:(پا-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پهانسي- پانسي-

پاش:(پاش)اسم صفت- د فاش عامیانه قرائت- څرګند- ښکاره- خور- رسوا-

پاش:(پاش)اسم صفت- واحد- مذکر- فحش- اپلتې- بربنډه او لغړه وینا- سپورې ستغې- (م- عربي)-

پاشان:(پا-شان)اسم صفت- (۱)ګډوډ- بې نظمه- خور وور- چیتر بیتر- (۲)بې پروا- لېونچک-

پاشتک:(پاش-تک)اسم- واحد- مذکر- واسه- پاشتوک- بڅی- چڼ- چاڼ- مغه وړوکی خشاکی لرګی چې د کوټې د پټولو پهٔ وخت پهٔ کوټه اچولے شي-

جمع پاشتکونه- پاشتکي-

پاشتکه:(پاش-تَ-که)اسم- واحد- جمع پاشتکي- وګورئ پاشتکے-

پاشتکے:(پاش-تَ-کے)اسم- واحد- مذکر- د اندرپانې دستکے- پاټکے- جمع پاشتکي- (پوړی)- (۲)وګورئ پشتکے-

پاشتکي:(پاش-ته-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پیشتکے- (پوړی)-

پاشتوک:(پاش-توک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پاشتک-

پاشل:(پا-شَل)مصدر- (۱)نوستل- شیندل- دوړول- شنل- دانه دانه کول- نُستل- خورول- غُرخول- تار پهٔ تار کول- (۲)خفه کول-

پاشلے:(پا-شهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاشلي- مؤنث پاشلې- وګورئ پاشل-

پاشنه:(پاش-نه)اسم- مغه وړوکے لرګے چې د تنبې پهٔ چوړ کښې ګرځي- (م- فارسي)-

پاشنه:(پا-شهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاشل-

پاشنه ګرد:(پاش-نَ-ګرد)اسم- مغه سورے چې پاشنه پکښې ګرځي-

پاشونکے:(پا-شون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاشونکي- مؤنث پاشونکې- وګورئ پاشل-

پاشویه:(پا-شو-یه)اسم- (۱)پښې وینځنه- (۲)پهٔ تبه کښې د یو علاج نوم چې پهٔ مغې کښې بیمار د ګیټو نه تر پښو پورې پهٔ ګرمو اُبو وینځي او بیا ئې پهٔ کپړې سره تړي-

پاغنده:(پا-غن-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ننداف وهلے شوے مالوچ- غیبه چې عام طور سره ئې شکل غنډ وي- (۲)هر یو نرم او سپین څیز- جمع پاغندي-

پاک:(پاک)اسم صفت- (۱)د پلیت ضد- صفا- سوتره- خالص- (۲)بې عیبه- بې ګناه- نیک- خوش اخلاقه- نمانځي- (۳)مکمل- بشپړ- (هندي، فارسي)-

پاکباز:(پاک-باز)اسم صفت- نیک- پرهېزګار- متقي- پاکدامن- (م- فارسي)-

پاکبازی:(پاک-با-زی)اسم- مؤنث- د پاکباز کېدو حالت- وګورئ پاکباز- (م- فارسي)-

پاکټ:(پا-کټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لفافه- (۲)تېله- خلته- ګتی- کڅوړی- قُتی (افغانستان)- (۳)جیب- (۴)د پاکټ بک مخفف- (م- انګریزي)-

پاکټ بک:(پا-کټ-بُک)اسم- واحد- مذکر- مغه وړوکے بیاض چې د یاداشتونو لیکلو د پاره پهٔ جیب کښې ساتلے شي- جمع پاکټ بکونه- (م- انګریزي)-

پاکدامن:(پاک-دا-من)اسم صفت- پرهېزګار- نیک- پاک لمنے- مؤنث پاکدامنه- (م- فارسي)-

پاکدامنه:(پاک-دا-مهٔ-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د پاکدامن مؤنث- وګورئ پاکدامن-

پاکدامني:(پاک-دا-مهٔ-نی)اسم- مؤنث- پرهېزګاري- عصمت- پاک لمني-

زبر"(خ-یهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(پو-ښې-دهٔ)

پاک لمنتوب- (م- فارسي)-

پاکړه:(پاک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پلن- د اوبو کټه- جمع پاکړې-

پاک زړے:(پاک-زړه-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- د نېک او صفا زړۀ لرونکے- نېک نيته- جمع پاک زړي-

پاک ساک:(پاک-ساک)صفت- (۱)کم عقل- نادان- ساده- (۲)معصوم- بې ګناه- (۳)صفا سوتره- وينځلے-

پاک طينتي:(پاک-طي-نت-تي)اسم- پاکطينتوب- د ښۀ سرشت لرنه- پاک فطرتي-

پاک لمن:(پاک-ل-من)اسم صفت- واحد- مذکر- حيادار- پاک ذاتے- نېک او پاک- محفوظ- باعصمته- مؤنث پاک لمنه- جمع مؤنث پاک لمنې-

پاک لمنه:(پاک-ل-مۀ-نه)اسم صفت- د پاک لمن مؤنث- وګورئ پاک لمن-

پاک لمني:(پاک-ل-مۀ-ني)اسم- وګورئ پاکدامني-

پاک لمنے:(پاک-ل-مۀ-نے)اسم صفت- محفوظ- نېک- حيادار- باعصمته-

پاک نفسي:(پاک-نف-سي)اسم- تقوىٰ- پرهېزګاري-

پاک نفسے:(پاک-نف-سے)اسم صفت- واحد- مذکر- پرهېزګاره- تقوىٰ دار- نېک-

پاک نويس:(پاک-ن-ويس)اسم صفت- صفا ليکونکے- مسوده خوشخطه ليکونکے-

پاک نويسي:(پاک-ن-وي-سي)اسم- د پاک نويس فن او پېشه-

پاک نيته:(پاک-نيه-ته)اسم صفت- د ښۀ نيت خاوند- د ښې ارادې خاوند-

پاک نيتي:(پاک-نيه-تي)اسم- مؤنث- د پاک نيته کېدو حالت-

پاک والے:(پاک-وا-لے)اسم- (۱)پاکي- سوتره والے- صفائي- (۲)څڼتوب- (افغانستان)- (۳)بې ګناهي- (۴)د حساب تصفيه- (۵)د جنجال ختمېدنه- (۶)بزرګي- زبرګي- (۷)فرض غُسل کونه-

پاکول:(پا-ک-ول)مصدر متعدي- (۱)صفا کول- سوتره کول- خيرې لرې کول- وينځل- پليتي لرې کول- (۲)خبره سپينول- (۳)حساب کتاب بېباقول- (۴)اُچه کول-

پاکون:(پا-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ پاکول-

پاکونکے:(پا-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاکونکي- مؤنث پاکونکې- وګورئ پاکول-

پاکونګ:(پا-ک-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پاکول-

پاکونه:(پا-ک-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاکول-

پاکه:(پا-که)اسم صفت- واحد- مؤنث- د پاک مؤنث- وګورئ پاک-

پاکه:(پا-که)اسم- واحد- مؤنث- د لوئ بر لرونکې خمتا- پلنه خمتا-

پاکه پاکي:(پا-که-پا-کي)اسم- واحد- مؤنث- د ټپوس پاده-

پاکي:(پا-کي)اسم- واحد- مؤنث- د نانيکانو چاړۀ- جمع پاکۍ/پاکيانې- (ش- پنجابي)-

پاکي:(پا-کي)اسم- واحد- مؤنث- د "پاکول" مصدر نه اسم- (۱)صفائي- پاکوالے- پاکيزګي- پاکيزتيا- پاکيزولي- پاکيزي- جمع پاکۍ- (۲)د فرضو ويښتۀ اخستنه-

پاکيزتيا:(پا-کيز-تيا)اسم- وګورئ پاکي-

پاکيزګي:(پا-کي-ز-ګي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پاکي-

پاکيزولي:(پا-کيز-و-لي)اسم- وګورئ پاکي-

پاکيزي:(پا-کي-زي)اسم- وګورئ پاکي-

پاکېدل:(پا-کې-دل)مصدر لازم- (۱)صفا کېدل- سوتره کېدل- وينځلے کېدل- (۲)اچه کېدل- څپ کېدل- (۳)د حساب کتاب بېباقېدل- (۴)ګناهونه توېدل- (۵)ښۀ سړے جوړېدل- (۶)پليتي لرې کېدل-

پاکېدن:(پا-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پاکېدل-

پاکېدنګ:(پا-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پاکېدل-

پاکېدنه:(پا-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاکېدل-

پاکېدونکے:(پا-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاکېدونکي- مؤنث پاکېدونکې- وګورئ پاکېدل-

پاکېدۀ:(پا-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ پاکېدل-

پاګل:(پا-ګل)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لېونے- سوداني- اتري- باتريا- (۲)ناپوهه- کم عقل- نادان- (ګول کېدل مصدرونه)- (م- هندي)-

پاګلتوب:(پا-ګل-توب)اسم- پاګلتيا- د پاګل کېدو حالت- لېونتوب-

پاګلتيا:(پا-ګل-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پاګلتوب-

پاګل خانه:(پا-ګل-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- د لېونيو د علاج او ساتلو ځائ- جمع پاګل خانې-

پاګلول:(پا-ګۀ-ل-ول)مصدر متعدي- (۱)سوداني کول- لېونے کول- پاګل کول- (۲)تنګول- زيات کړول-

پاګلون:(پا-ګۀ-ل-ون)حاصل مصدر- وګورئ پاګلول-

پاګلونکے:(پا-ګۀ-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پاګلونکي- مؤنث پاګلونکې- وګورئ پاګلول-

پاګلونه:(پا-ګۀ-ل-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاګلول-

پاګلېدل:(پا-ګۀ-لې-دل)مصدر لازم- (۱)لېونے کېدل- (۲)تنګېدل- کړېدل-

پاګلېدن:(پا-ګۀ-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پاګلېدل-

پاګلېدنه:(پا-ګۀ-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پاګلېدل-

پاګلېدونکے:(پا-ګۀ-لې-دون-کے)اسم فاعل- جمع پاګلېدونکي- مؤنث پاګلېدونکې- وګورئ پاګلېدل-

پاګن:(پا-ګن)اسم- واحد- مذکر- پګن- د فصلي کال يولسمه مياشت چې عام طور سره د فروري، مارچ سره مطابق وي-

پال:(پال)اسم- واحد- مذکر- (۱)فال- تقدير- قسمت- (۲)پرهېز- د طبي مشورې مطابق لۀ څنو څيزونو نه ځان ژغورنه- (۳)د يوې پاله- سسپوره- سسپار- کره کې- (۴)د سيند وروکے خور- د اَبو چر- د سيند وره شيله- (۵)پالونکے- (افغانستان)-

پالاکه:(پا-لا-که)اسم- واحد- مؤنث- د مار پېه- شغه پلنه کرښه چې د مار

"ئ" (څې-رل)، "ې" (هې-ره-ول)، "ي" (پيا-لې)، "ے" (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

تللو نه وروستو پاتې کیږي- د مار څرېښدې-

پالان:(پا-لان)اسم- واحد- مذکر- پالان- کته- (م- فارسي)-

پالان:(پا-لان)اسم- واحد- مذکر- ساروان- ساربان- جمع پالانان-

پالانی:(پا-لا-نی)اسم- واحد- مذکر- ټټو- یابو-

پالانۍ:(پا-لانۍ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پاپلې- (۱)د موټو، میو، لوبیا او مشنګو هغه برخه چې دانې پکښې پټې وي- (۲)کیلي- چابي- کُنجي- نوسې-

پال پې:(پال-پې)اسم- وګورئ پاپلې-

پالتو:(پال-تو)اسم صفت- زيات- فالتو- ډېر- اضافي-

پالټي:(پال-ټي)اسم- واحد- مؤنث- د پارټي عامیانه قرأت- وګورئ پارټي-

پالټي باز:(پال-ټي-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- د پارټي باز عامیانه قرأت- وګورئ پارټي باز-

پالټي بازي:(پال-ټي-با-زي)اسم- واحد- مؤنث- د پارټي بازي عامیانه قرأت- وګورئ پارټي بازي-

پالسباز:(پا-لس-باز)اسم فاعل/صفت- وګورئ پالسي باز-

پالسي:(پا-ل-سي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پالیسي- حکمت عملي- چل- سلوک- تدبیر- د فرد حکومت له طرفه یو مناسب سلوک یا لاره غوره کونه- د خپل مراد د سر ته رسولو د پاره د یو سیاسي تدبیر وړاندې بوتلنه- (۲)چل- فریب- (م- انګریزي)-

پالسي باز:(پا-ل-سي-باز)اسم فاعل- (۱)پالیسي کونکے- د فرد حکومت له طرفه یو مناسب سلوک یا لاره غوره کونکے- د خپل مطلب پوره کولو د پاره د یو سیاسي تدبیر وړاندې بوتلونکے- (۲)چل یا فریب کونکے-

پالش:(پا-لش)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پېزار، فرنیچر او ورونو وغیره د پرتولو او ښائسته کولو رنګ- (۲)ځلا- پرق- روښنائي- رونوالے- (۳)چاپلوسي- خوشامده- چاپېرزسي- (م- انګریزي)-

پالشي:(پا-لۀ-شي)اسم فاعل/صفت- (۱)پالش ورکونکے- (۲)چاپلوس- خوشامندګر- چالاک-

پالک:(پا-لک)اسم- واحد- مذکر- متبنّی- په زوئ نیولے شوے ملک- لوئ کړے شوے ملک- بالک- بالکے- (م- هندي)-

پالک:(پا-لک)اسم- واحد- مذکر- چرګ سابۀ- وړوې او پلنې پاڼې لرونکے ساګ- نباتاتي نوم سپیي نیسا اوئریسیا-

پالکانه:(پال-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- روښندان- کړکۍ- دریڅه- دریچه- دیرڅه- روزان-

پال کتونکے:(پال-ک-تون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- فال کتونکے- فالي- پالي- فال ایستونکے- ترومتي- پالګر- جمع پال کتونکي-

پالکوړے:(پال-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)لۀ میزري جوړه هغه تبله چې زمیدار پکښې رمبے او لور وغیره ږدي- (۲)هغه کوټه چې د زمیداري اسباب پکښې پروت وي-

پالکوړے:(پال-کو-ړے)اسم- د زمکې د خیرلو یوه آله- سسپار-

پالکي:(پال-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)یو خاص قسم ډولي- چوپان- (۲)یو قسم چینجے- (۲)منا- مناګي- (م- هندي)-

پالګر:(پال-ګر)اسم فاعل/صفت- پالي- پال کتونکے- نجومي- فال بین- جمع پالګران-

پالګري:(پال-ګۀ-ري)اسم- واحد- مؤنث- د پال کر کېدو حالت- وګورئ پالګر-

پالل:(پا-لل)مصدر- (۱)ساتل- پرورش کول- لوېول- تربیه کول- پالنه کول- (۲)دوستي کول- حق ادا کول- (۳)په عاجزي او خاکساري سره د چا خدمت کول-

پاللے:(پا-لۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پاللي- مؤنث پاللې- وګورئ پالل-

پالندوئے:(پا-لن-دو-ئے)اسم فاعل- وګورئ پالل- (افغانستان)-

پالنګ:(پا-لنګ)اسم- واحد- مذکر- چپرکټ- کټ-

پالنګ پوش:(پا-لنګ-پوش)اسم- واحد- مذکر- په کټ د غوړولو څادر- جمع پالنګ پوشونه-

پالنګوټے:(پا-لنګ-کو-ټے)اسم تصغیر- وړوکے او نازک پالنګ- وړوکے چپرکټ-

پالنه:(پا-لۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پالل-

پالوال:(پال-وال)اسم صفت- (۱)پرهېز کونکے- فالي- پالي- (۲)وفادار- (افغانستان)-

پالوان:(پا-ل-وان)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پهلوان- کبهمار- د کُشتي ماهر- (۲)طاقتور- مضبوط- (۳)غټ- (۴)بهادر- تکړه- (۵- اسم)هغه آله چې موټر، لارۍ وغیره پرې زېچتوي- (م- فارسي پهلوان)-

پالوچ:(پا-لوچ)اسم صفت- اواره ګرد- پښې آبله پښې- لوڅې پښې لرونکے-

پالوڅ:(پا-لوڅ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ پالوچ-

پالوده:(پا-لو-ده)اسم- واحد- مؤنث- فالوده- د پخې او چک کړې شوې ناشستې مېنچې چې د زاورې شربت سره په یو ځائې خوړے شي- (م- فارسي)-

پالوز:(پا-لوز)اسم- واحد- مذکر- هغه دري، ټاټ یا قالین چې د ناستې د پاره استعمالیږي- جمع پالوزونه-

پالوشپه:(پا-لو-شپه)اسم- واحد- مؤنث- شب قدر- شوقدر- د برات شپه- پنځلسې- د بلنړو شپه- ښه شپه- جمع پالوشپې-

پالونکے:(پا-لون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پالونکي- مؤنث پالونکې- وګورئ پالل-

پالونے:(پا-لو-نے)اسم فاعل- جمع پالوني- وګورئ پالل-

پاله:(پا-له)اسم- واحد- مؤنث- پال- سسپار- سسپال- کره کی سپاره- په یوې کښې د زمکې د خیرلو د اسپنې آله- جمع پالې-

پاله پدري:(پا-له-پد-ري) متعلق فعل- اړومرو- خامخا- ضرور- حتمي- (افغانستان)-

پالهنګ:(پال-هنګ)اسم- واحد- مذکر- کولنډ- هغه لرګے چې د غوا مېښې د بچي په غاړه کښې د دې د پاره اچولے شي چې د مور پئ ونه روي- خرکې-

پالي:(پا-لي)اسم- واحد- مذکر- د يوې د کيلونو تر منځه د اړولو نه پاتې شوے ځاې- باړه- پاړه-

پالي:(پا-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- پال کتونکے- پال کر-

پالي:(پا-لي)اسم فاعل- پرهېزکونکے- په خوراک کښې خيال ساتونکے-

پالي پالي:(پا-لي-پا-لي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پاې پاې-

پاليسي:(پا-لي-سي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پالسي- (م- انګريزي)-

پالېز:(پا-لېز)اسم- واحد- مذکر- د هندوانو، خټکو، خربوزو يا بادرنګو باغ- (م- فارسي)-

پالېزکاري:(پا-لېز-کا-ري)اسم- واحد- مؤنث- د هندوانو، خټکو يا خربوزو کرونده-

پالېزوان:(پا-لېز-وان)اسم فاعل/صفت- (۱)کښے- د پالېز محافظ- باغوان- (۲)د پالېز لرونکے-

پالېزواني:(پا-لېز-وا-ني)اسم- د پالېز ساتنه- د پالېز څارنه- جمع پالېزوانۍ-

پالبزه:(پا-لې-زه)اسم- واحد- مؤنث- وران ويجاړ ځاې-

پام:(پام)اسم- واحد- مذکر- فهم- خيال- فکر- هوش- احتياط- (م- عربي)-

پام:(پام)اسم- واحد- مذکر- اتڼ- د اتڼ سره يو ځاې سندرې وئيله-

پام:(پام)اسم- واحد- مذکر- د وړدو پاڼو لرونکې د کوپرې يا کجورې په شان يوه ونه- (م- انګريزي)-

پامال:(پا-مال)اسم صفت- پائمال- د پښو د لاندې مبتلے شوے- چخنے-

پامالول:(پا-ما-ل-ول)مصدر متعدي- پائمالول- بربادول- مبتل- چخني کول- د پښو لاندې مبتل-

پامالونکے:(پا-ما-ل-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پامالونکي- مؤنث پامالونکې- وګورئ پامالول-

پامالونه:(پا-ما-ل-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پامالول-

پامالي:(پا-ما-لي)اسم- واحد- مؤنث- پائمالي- د پامال کېدو حالت- وګورئ پامال-

پامالېدل:(پا-ما-لې-دل)مصدر لازم- پائمالېدل- د پښو لاندې مبتلے کېدل- چخني کېدل-

پامالېدنه:(پا-ما-لې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ پامالېدل-

پامالېدونکے:(پا-ما-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پامالېدونکي- مؤنث پامالېدونکې- وګورئ پامالېدل-

پامان:(پا-مان)اسم- د "په امان" مخفف او غلط قرأت-

پامبېل:(پام-بېل)اسم- واحد- مذکر- د خاورو ډکه بېلچه- بېل- يوم-

پام پوخ:(پام-پوخ)اسم صفت- کامل- خرامبو- سست پست- آلسي-

پام پوخه:(پام-پو-خه)اسم- واحد- مؤنث- سوراړه- خشکي- قحطي- سره- کال- د اُبو نيشتوالے-

پام پوښه:(پام-پو-ښه)اسم- واحد- مذکر- د پاپوښ عاميانه قرأت- بېزار-

پامته دار:(پام-ته-دار)اسم- واحد- مذکر- حاجت من- محتاج-

پامته داري:(پام-ته-دا-ري)اسم- د پامته دار کېدو حالت- وګورئ پامته دار-

پامرد:(پا-مرد)اسم صفت- (۱)همتي- تکړه- زړور- (۲)مستقل مزاج- (م- فارسي)-

پامسټ:(پا-مسټ)اسم- واحد- مذکر- د پامسټرۍ عالم- (م- انګريزي)-

پامسټري:(پا-مس-ټري)اسم- واحد- مؤنث- د لاس د تلي د کرښو نه د چا د ژوند او مستقبل د پتې لګولو علم-

پاملرنه:(پام-ل-ره-نه)اسم- (۱)فکر- خيال- (۲)تدبير- توجه- احتياط- څارنه- ساتنه- اتيات- جمع پاملرنې- (افغانستان)-

پان:(پان)اسم- واحد- مذکر- (۱)پاند- پلنې پاڼې لرونکې يوه ونه او د هغې پاڼې چې کته او چونه پرې لګوي او تماکو، چاليا او سپين لاچې پکښې زنغاړي- (۲)پاند- د تاش له څلورو رنګونو څخه هغه سور رنګ چې په پاڼو ئې د زړه يا د پان د پاڼې تصوير وي- تپان- (۳)پاند- پيکه کنے چې د څاروو د خوراک د پاره استعماليږي- نباتاتي نوم د بانپربېتل پانه- (م- هندي)-

پانجشنبه:(پانج-شم-به)اسم- واحد- مؤنث- پنجشنبه- پانشنبه- له جمعې نه مخکښې او د چارشنبې (شورو) نه پس ورځ-

پاند:(پاند)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پان-

پاندان:(پان-دان)اسم- واحد- مذکر- هغه لوښے چې پکښې د پانونو پاڼې د تازه پاتې کېدو د پاره ايښوے شي- د پان د پاڼو نه علاوه پکښې چونه او سپاري وغېره هم ايښولے شي-

پاندره:(پاند-ره)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم ځنګلي واښه-

پاندره:(پاند-ره)اسم- واحد- مؤنث- پاندرۍ- قفل- تاله- جمع پاندرې-

پاندره:(پاند-ره)اسم- واحد- مؤنث- پاندرۍ- د تيلې او رېښمو شريک تارونه چې د ناوې اوربل کښې اچولے شي- جمع پاندرې-

پاندري:(پاند-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پاندره-

پانډه:(پان-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ردي او خځلې ټوکرۍ- (۲)پنډ- پنډه- پېټے- جمع پانډې-

پانډي:(پان-ډي)اسم- واحد- مذکر- پنډي- پېټوارے- پېټي يا پنډونه چلونکے- جمع پانډيان-

پانزېب:(پان-زېب)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګورئ پازېب-

پانسالي:(پان-سا-لي)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ابوښے- (م- هندي)-

پانسمان:(پان-سمان)اسم- واحد- مذکر- (۱)ملهم- پټۍ- (۲)د زخم تړنه-

دَ زخم پربولل او دَ ملهمو ایښودنه- (۲)دَ پټی لګولو سامان- (افغانستان)-

پانسه:(پان-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ جوارۍ دانه- دَ ټُرعې اچولو پچه- (م- هندی)-

پانسی:(پان-سی)اسم- واحد- مؤنث- تېزندی- زندی- سولۍ- پهٔ خوړنده وژنه- غرغره- دار (کول/کېدل مصدرونه)- (م- هندی پهانسی)-

پانسیون:(پان-سی-یُون)مذکر- (۱)مېلمستون- پهٔ یو ځایٔ کښې چا ته استوګه او خوراک ورکونه چی کرایه یٔ میاشت پهٔ میاشت اخلی- (۲)دېره کېدنه- دَ طالبانو دَ وسېدو ځایٔ- (افغانستان)-

پانشنبه:(پان-شم-به)اسم- واحد- مؤنث- وګوریٔ پانجشنبه-

پانصدی:(پان-ص-دی)اسم صفت- دَ پنځوسو مغلی فوځ منصبدار چې دَ مغلو پهٔ نظام کښې به افسری لهٔ دې حده شروع کېده- (متروک)-

پانکے:(پان-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)مرام- مقصد- نصب العین- (۲)هغه ډېه چې لهٔ کومې ځنې موخه ویشتے شی-

پانګ:(پانګ)اسم- واحد- مذکر- پاڼ- کمر-

پانګه:(پانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پنګه دوېم قرأت- پنګه- جمع کړے مال- سکه- سر- دولت- جمع پانګې-

پانو:(پا-نو)اسم- واحد- مؤنث- سره بخملی- بی بی پاتو- یو سوررنګے چینجے-

پانوس:(پا-نُوس)اسم- واحد- مذکر- دَ فانوس عامیانه قرأت- وګوریٔ فانوس- جمع پانوسونه-

پانه:(پا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فانه- چیڼی- چُڼی- دَ لرګی یا اَسپنې هغه ټکړه چې دَ لرګی څیرلو پهٔ وخت پرې دَ لرګی درز ارتولے شی- (۲)هغه سکنجه چې ملزم پرې دَ جرم پهٔ اقرار آماده کولے شی- (۳)شپېته- هغه لرګے چې دَ دروازو پهٔ چوکاټونو، دَ کټونو پهٔ چوړونه کښې دَ مضبوطیا دَ پاره ورکولے شی-

پانه:(پا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بولټ- بلوټ- لیندی- لټ- دَ لیندی وال ټوپک لیندی، چې پهٔ راکښلو یٔ دَ ټوپک شپېلی کښې دَ کارتوس ایښولو ځایٔ پېدا شی- (۲)دَ اَسپنې یو اوزار چې دَ موټرو لارو دَ ځنو حصو دَ سختولو دَ پاره پکارولے شی-

پانیات:(پا-نی-یات)اسم- واحد- مذکر- نصیحت- عبرت- پند- جمع پانیاتونه-

پانیاتی:(پا-نی-یا-تی)اسم صفت- (۱)دَ پند او عبرت زړ شے- هغه څهٔ چې دَ پند باعث شی- هغه څوک چې دَ یو څهٔ نه عبرت واخلی- (۲)هغه سړے چې حال یٔ دَ نورو دَ پاره دَ عبرت سبب شی-

پاڼ:(پاڼ)اسم- نیم سېرے- دَ نیم سېر وزن-

پاڼ:(پاڼ)اسم- واحد- مذکر- وګوریٔ پانګ-

پاڼ:(پاڼ)اسم- واحد- مذکر- منا- مناکی-

پاڼ:(پاڼ)اسم- واحد- مذکر- دَ اَسپنې اُبهٔ- آب-

پاڼ:(پاڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پټی پوله- (۲- صفت)بختور- (افغانستان)-

پاڼ:(پاڼ)اسم- واحد- مذکر- سرېښ- سلېښ- ګوند-

پاڼ:(پاڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه پترے چې دَ غم یا بیماری پهٔ حالت کښې یٔ شونډې نیسی- (۲)پوټکے- پوټ- پټ- (۳)دَ لرګی نری تخته چې دَ ستار، تنبل او غلبېل پهٔ جوړولو کښې استعمالیږی- (جمع پاڼونه)-

پاڼریژ:(پاڼ-ریژ)اسم- خزان- دَ پاڼو دَ غُرځېدو وخت- برګ رېزی- دَ منی پهٔ موسم کښې چې پاڼې او پخې زیړې شی نو له ونو رالویږی- (شائد دَ "برګ ریز" جدیده پښتو)-

پاڼسی:(پاڼ-سی)اسم- واحد- مذکر- وګوریٔ پانسی- (عامیانه)-

پاڼکی:(پا-ڼ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ پاڼې اسم تصغیر- وړه پاڼه-

پاڼکی:(پاڼ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پاټکے- پاڼکے- دَ اندرپاڼې دستکے-

پاڼو:(پا-ڼو)اسم- واحد- مذکر- څړه پاڼه- کاوو- کاهو- دَ ساګ یو قسم چې شنې لوئې پاڼې لری اوم خوړے کیږی او حکیمان یٔ پهٔ دارو کښې استعمالوی- نباتاتی نوم لک ټیوکا سالیوا-

پاڼه:(پا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ ونې، پهٔ بوټی یا ګل زرغُنه شوې پخه چې دَ هغې پهٔ ذریعه دغه نباتات خوراک حاصلوی- (۲)دَ جارجر (جاجر) پهٔ ځلهٔ دَ پاسه نرے پترے- پوڼے- (۳)دَ تاش پته- (۴)دَ کتاب مخ- (۵)پاڼ- دَ پټی پوله- (افغانستان)-

پاڼه:(پا-ڼه)اسم صفت- بختوره-

پاڼیډال:(پا-ڼی-ډال)اسم- واحد- مذکر- اُبهٔ وړے- دَ غرهٔ هغه وچته برخه چې دَ باران اُبهٔ پرې دوه خایه کیږی- (م- هندی)-

پاڼیز:(پا-ڼیز)اسم صفت- پاڼې سره متعلق- پاڼې لرونکی- دَ پخو ډک- هغه بوټی یا ونې چې ډېرې پاڼې لری-

پاڼی:(پا-ڼی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پېکو- بغری-

پاڼی:(پا-ڼی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پهٔ زمکه راکښلې هغه دائره چې ماشومان پکښې غزان یا مردکی ږدی او دَ ټیک پهٔ ذریعه چی کوم غُز یا مردکے وُباسی نو هغه وګټی-

پاڼے:(پا-ڼے)اسم- (۱)بخت- طالع- (۲)یو قسم بوټے چې ګل یٔ نهٔ سپړدلے کیږی-

پاړ:(پاړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)څلورمه حصه- (۲)څلور چیټاکی- (۳)څلور انې- (۴)پنځلس منټه- (۵)شپږ جیربه زمکه-

پاوتل:(پاړ-تل)اسم- واحد- مذکر- خړه- رسوب- کنوبے- دَ غوړ یا ابلن څیز پهٔ بېخ کښې ناسته برخه-

پاړرق:(پا-و-رق)اسم- واحد- مذکر- پارکاب- پارکیب- رکاب- رکیب- هغه تورے چې دَ قلمی کتابونو دَ ښی اړخ دَ مخ پهٔ آخر کښې پهٔ دې غرض لیکلے کېدے شی چې دَ کس اړخ دَ وړومبی توری پته ترې ولګی-

دا انتظام اوس په هر مخ د هندسي ليكلو په وجه متروک دے-
پاورقه:(پا-و-ر-قه)اسم- واحد- مؤنث- حاشيه- شرحه- د صفحې آخريني برخه- فټ نوټ- (م- فارسی)-
پاورقی:(پا-و-ر-قی)اسم- (۱)د صفحې لاندې ليكلے شوې حاشيه- فټ نوټ- (۲)ركاب-
پاورهاوس:(پا-ور-هاوس)اسم- واحد- مذكر- بجلی گر- د بجلۍ د جوړېدو او وېشلو ځاێ- (م- انگريزی)-
پاوكے:(پا-و-كے)اسم تصغير- (۱)د پاؤ اسم تصغير- (۲)د خېرات يا نذر د پاره د سړی په سر پاؤ غله راټولونه- (جمع پاوكی)-
پاوليتوب:(پاو-لی-توب)اسم- (۱)جولاتوب- (۲)كم عقل توب- ساده توب- كم عقلی-
پاولے:(پاؤ-لے)اسم صفت- ناپوهه- كم عقل- ساده- اولو قولو-
پاولے:(پاو-لے)اسم- واحد- مذكر- جولا- په كهی كپړه جوړونكے- جمع پاؤليان-
پاولے:(پاو-لے)اسم- واحد- مذكر- پولے- د ځلورانيز په شان يوه زړه سكه چې پخوا به په غاړو كښې د پسالۀ په ډول اچولے شوه او يا په قميصونو د پاسه گنډلے شوه-
پاوندگلي:(پا-وند-گ-لي)اسم- مؤنث- د ځاروو د څرولو پېشه-
پاونده:(پا-ون-ده)اسم- واحد- مذكر- كوچر- غوبه- څاروی پيازنكے- پونده- كوچے- كډه په سر- خانه بدوش-
پاونډ:(پاونډ)اسم- واحد- مذكر- (۱)پونډ- پون- د جرمنی او ځنې نورو ملكونو سكه چې قيمت ئې بدلېږی رابدلېږی- په برطانيه كښې دې سكه كښې شل شلنگه وی- (۲)د وزن يوه پېمانه چې شپاړس اونسونه لری-
پاويزه:(پا-زي-زه)اسم- واحد- مؤنث- د پاؤ پيو پېمانې لوښے- جمع پاويزې-
پاوے:(پا-وے)اسم- واحد- مذكر- د پاؤ د وزن كاڼے-
پامه:(پا-مه)اسم- واحد- مؤنث- پټه- د زخم پټۍ چې ملهم پرې لگېدلے وی-
پائپ:(پائپ)اسم- وگورئ پايپ-
پانی:(پا-نی)اسم- واحد- مذكر- جلب- پېزوان-
پانی:(پا-نی)اسم- واحد- مؤنث- تېزندی- پانسی- (م- پنجابی)-
پائی:(پا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- يوه پخوانۍ سكه- د زړې پېسې درېمه، د انې دولسمه او د روپۍ ۱/۱۹۲ حصه- (م- هندی)-
پاياب:(پا-ياب)اسم- واحد- مذكر- سيند، ولې او تالاؤ وغېره كښې دومره اُبۀ چې پښه تل سره لگی- پاياؤ- پاياوه- چړ- گودړ- جمع پايابونه- (م- فارسی)-
پايان:(پا-يان)اسم- واحد- مذكر- (۱)انجام- انتها- (۲)شكته برخه- (م- فارسی)-

پاياؤ:(پا-ياو)اسم- واحد- مذكر- وگورئ پاياب-
پاياؤ:(پا-ياو)اسم صفت- پيازړے- مېړنے- تېزرو- زوراور
پاياوه:(پا-يا-وه)اسم- واحد- مؤنث- وگورئ پاياب-
پاياوی:(پا-يا-وی)اسم صفت- (۱)پاندار- ډېر عمر- (۲)لږ زور-
پايپ:(پا-يپ/پائپ)اسم- واحد- مذكر- (۱)پېپ- د اُسپنې نل- ربړی نل- پلاسټكی نل- (۲)نېيل- بورغو- (۳)هغه آله چې يو خاص قسم تماكو پكښې څښلے شی-
پايپ لائين:(پا-يپ-لا-ين)اسم- د ربړ، سيمټو يا اُسپنې نه جوړ شوے نل چې اُبۀ يا تېل پكښې لۀ يوۀ ځايه تر بله ځايه رسولے شی-
پاينے:(پا-يه-نے)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)پائناوے- پائينے- (۲)وروستے- آخرنے- آخری- لۀ ټولو نه وروستو- د ټولو په آخر كښې-
پايو:(پا-يو)اسم- واحد- مذكر- بچكرے- بچكركے- هغه وړوكے لرگے چې د كبانو نيولو د پاره د كنډې د تار سره تړلے وی-
پايول:(پا-يه-ول)مصدر متعدی- (۱)لويول- ژوندے ساتل- ژوند وركول- (۲)د اُبو پاياؤ معلومول- (۳)وسول- ډېره كول- (۴)ختمول- سر ته رسول-
پايولے:(پا-يه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع پايولی- مؤنث پايولې- وگورئ پايول-
پايون:(پا-يون)اسم فاعل- واحد- مذكر- پايونكے- مربی- پرورش كونكے- پالونكے-
پايونكے:(پا-يون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع پايونكی- مؤنث پايونكې- وگورئ پايول-
پايونگ:(پا-يه-ونگ)حاصل مصدر- وگورئ پايول-
پايونه:(پا-يه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وگورئ پايول-
پايه:(پا-يه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)درجه- مرتبه- عزت- قدر- (م- فارسی)- (۲)د دړې په ذريعه حركت وركونكې د غنډ شكل هغه آله چې عام طور سره گاډيو وغېره كښې استعماليږی-
پايه تخت:(پا-يه-تخت)اسم- وگورئ پاێ تخت-
پائين:(پا-ئين)اسم- واحد- مذكر- وگورئ پاېناب-
پاێ:(پا-ێ)اسم- (۱)پښې- (۲)انجام- آخر-
پاێ بست:(پا-ێ-بست)اسم- پابسته- په پښو تړلے- گرفتار- پابند- (م- فارسی)-
پاێ بند:(پا-ێ-بند)صفت- وگورئ پابند-
پاێ بوسی:(پا-ێ-بو-سی)اسم- وگورئ پابوسی-
پاێ پاێ:(پا-ێ-پا-ێ)اسم (مركب)- پاې پو- پالی پالی- پاپابو- پاپی پاپی- پاپلے- د ماشومام په زړزمبی خل په ويره ويره پل اخستنه- په ورو ورو پاپو پل وهنه-
پاێ پو:(پا-نې-پو)اسم- واحد- مؤنث- وگورئ پانې پانې-
پاێ پېچ:(پا-ێ-پېچ)اسم- واحد- مذكر- غړے- پيتاوه- پاێ تاوه-

ئ" (خې-رل)، ې"(هې-ره-ول)، ی"(پيا-لی)، ے"(تن-دے) تفصيل د پاره وگورئ تشريحات صفحه ۱

مغه وړينه پټۍ چې د پښو نه تاوولے شي-

پائې تخت:(پا-ئې-تَخت)اسم- واحد- مذکر- پايه تخت- دارالحکومت- د باچا د ګدۍ ځائې-

پائې تاوه:(پا-ئې-تا-وه)اسم- واحد- مؤنث- نړی- پائې پيچ- پيتاوه- مغه وړينه پټۍ چې د پښو نه تاوولے شي-

پائې تاوه:(پا-ئې-تا-وه)اسم- غلېل- ليندہ- پټي- کرکمنه- غرکمانه-

پائېتکه:(پا-ئې-تَ-که)اسم- واحد- مؤنث- پاشتکه- د اندرپائې دستکے- پائېتکي-

پائېځور:(پا-ئې-ځ-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- لوئې لوئې پينځې لرونکے- کلي وال- غېرمهذب- مؤنث پائېځوره- جمع پائېځوری-

پائېځوړ:(پا-ئې-ځوړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پائې- آخر- انتها- انجام- (۲)د يوې پلې وروستے سرے- (۳)د يو څيز پاتې حصه- پېتوړ-

پائېڅه:(پا-ئې-څه)اسم- واحد- مؤنث- پښڅه- پوڅه- جمع پائېڅې-

پائېڅه دوړ:(پا-ئې-څه-دوړ)اسم صفت- واحد- مذکر- پينڅه شړپ- د لويو لويو پينڅو لرونکے پوڅه وار- (۲)کم عقل- ناپوهه- نادان- جمع پائېڅه دوړي-

پائېڅه شړپ:(پا-ئې-څه-شړپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پائېڅه دوړ- جمع پائېڅه شړپي-

پائېدار:(پا-ئې-دار)اسم صفت- مضبوط- کلک- ټينګ- محکم- پوخ- (م- فارسی)-

پائېداري:(پا-ئې-دا-ري)اسم- مؤنث- د پائېدار کېدو حالت-

پائېدان:(پا-ئې-دان)اسم- واحد- مذکر- پېدان- د پښې اېښوو ځائې- موټر، ټانګې يا بلې کومې سورلۍ ته د ورختلو د پاره د پښې اېښوو ځائې-

پائېدل:(پا-ئې-دل)مصدر لازم- ژوندے پاتې کېدل- ژوند کول- لهٔ مرګه بچ کېدل-

پائېدلے:(پا-ئې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پائېدلي- مؤنث پائېدلې- وګورئ پائېدل-

پائېدن:(پا-ئې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پائېدل-

پائېدنګ:(پا-ئې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پائېدل-

پائېدنه:(پا-ئې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پائېدل-

پائېدو:(پا-ئې-دو)اسم فاعل- (۱)پېغام رسونکے- خبر رسونکے- ايلچي- (۲)پيادہ- د حمام نوکر- مغه نوکر چې د منډې رامنډې او وړلو راوړلو کار کوي-

پائېدونکے:(پا-ئې-دون-کے)اسم فاعل- جمع پائېدونکي- مؤنث پائېدونکې- وګورئ پائېدل-

پائېدهٔ:(پا-ئې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ پائېدل-

پائېزار:(پا-ئې-زار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېزار-

پائېزېب:(پا-ئې-زېب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پازېب-

پائېزېر:(پا-ئې-زېر)اسم- واحد- مذکر- پېزار- پائېزار- پڼه- څپلې- بوټ وغيره-

پائېښت:(پا-ئې-ښت)حاصل مصدر- لهٔ پائېدل څخه حاصل مصدر- (۱)بقا- دوام- (۲)ژوندے پاتې کېدنه- تر زياتې مودې پورې ژوند کونه-

پائېکو:(پا-ئې-کو)اسم- واحد- مؤنث- پيکو- د مېنچو د جوړولو يو مشين- د شولو صفا کولو آله- دنګ- جمع پائېکوګانې-

پائېکوټ:(پا-ئې-کوټ)اسم- واحد- مذکر- کوټانکړ- دنګوالا- د شولو ټکونکے- مغه څوک چې د پائېکو په ذريعه شولې ټکوي- جمع پائېکوټان-

پائې کيله:(پا-ئې-کي-له)اسم- واحد- مؤنث- د کرکروندې د يو پټي اخرې کيله يا برخه-

پائېګاز:(پا-ئې-ګاز)اسم- واحد- مذکر- د نيمې قلبې زمکه- شپړ جيربه- جمع پائېګازونه-

پائېګاه:(پا-ئې-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جنګي اډه- (۲)د غرهٔ لمن-

پائېګاه:(پا-ئې-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- د اسونو تړلو ځائې- (م- فارسی)-

پائېل:(پا-ئېل)اسم- واحد- مذکر- سکړک- سوکړک- سوړسک- پياڅه- جوارے- د جوارو روټې- ګولے- ککوری-

پائېل:(پا-ئېل)اسم- (۱)پيزېب- پازېب- پائله- د ښځو د پښو يو پسول- (م- هندی)- (۲)د پښو لهٔ طرفه پېدا شوے ماشوم- (۳)هواره زمکه- مغه پرته زمکه چې د کرلو جوګه وي-

پائېلات:(پا-ئې-لات)اسم- واحد- مذکر- فتنه- شر- فساد- پېلات- جمع پائېلاتونه-

پائېلاتی:(پا-ئې-لا-تی)اسم فاعل صفت- فسادی- شرير- ورانکارے- جګړالو- شری- فتنه ګر- فتنه اچونکے- پېلاتی-

پائېلامه:(پا-ئې-لا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نښه- علامه- (۲)بانه- بهانه- (۳)سبَه- بنسټ- تاداو- بېخ- اساس- وېخ-

پائېلټ:(پا-ئې-لټ)اسم- واحد- مذکر- هواباز- د جهاز چلونکے- پائېلوټ- جمع پائېلټان- مؤنث پائېلټه- جمع مؤنث پائېلټې- (م- انګريزی)-

پائېلوټ:(پا-ئې-لوټ)اسم- واحد- مذکر- د پائېلټ د افغانستان تلفظ-

پائېلوړ:(پا-ئې-لوړ)اسم- واحد- مذکر- لټون- تلاش- لټونه-

پائېلوړ:(پا-ئې-لوړ)اسم صفت- دينګ- دنګ-

پائېله:(پا-ئې-له)اسم- واحد- مؤنث- پېله- د پښو يو پسول- جمع پائېلې-

پائېمال:(پا-ئې-مال)اسم صفت- وګورئ پامال-

پائېمالول:(پا-ئې-ما-ل-ول)مصدر متعدی- پامالول- تباه کول- خرابول- بربادول- د پښو لاندې مېل-

پائېمالی:(پا-ئې-ما-لی)اسم- وګورئ پامالی-

پائېمالېدل:(پا-ئې-ما-لې-دل)مصدر لازم- لتاړېدل- د پښو لاندې مېلے کېدل- بربادېدل-

پانېناب:(پا-يُ-ناب)اسم- واحد- مذکر- پانياؤ- پائين- وروستو دَ سرى ورخ ضد- هغه پټے چې دَ ولې پهٔ آخر کښې وى او دَ أبو وار يُ ورستو راځي-
(۲)دَ ابو ننګوړ- (۳)دَ سيند دَ أبو دَ بهېدلو پهٔ لحاظ وروستو راتلونکے ځايُ يا کلے-

پانېناوے:(پا-يُ-نا-وے)دَ پانېناب سره متعلق- وګورئ پانېناب-

پانېنخه:(پا-نېن-ځه)اسم- واحد- مؤنث- پېنځه- پېځه- جمع پانېنځې-

پانېنخ:(پا-يُ-نخ)اسم- دَ انګورو هغه خېلى چې دَ انګورو خوشه ورسره خوړنده وى-

پانېنده:(پا-نېن-ده)اسم فاعل/صفت- پانبدار- پانېدونکے- مضبوط- قائم- محکم- پاتې کېدونکے-

پانېنزېب:(پا-نېن-زېب)اسم- واحد- مذکر- پېنزېب- وګورئ پازېب- جمع پانېنزېبونه-

پانېنغ:(پا-يُ-نغ)اسم- واحد- مذکر- پېنغ- نس خوږے- دَ ګېډې درد-

پانېنک:(پا-يُ-نک)اسم- واحد- مذکر- دَ تورې، چړې يا نورو داسې وسلو پهٔ تېکى يا کانټې، دَ ګلکارۍ کار- جمع پانېنکونه-

پانېنو:(پا-يُ-نو)اسم- وګورئ پانېناب- (۲)کوت- کوتے- ننوتې زمکه- کونجينه زمکه-

پانېنه:(پا-يُ-نه)حاصلِ مصدر- بقا- دوام- پانېدنه- باقى پاتې کېدنه-

پانېنے:(پا-يُ-نے)اسم- دَ پانېن سره متعلق- وګورئ پانېناب-

پب:(پب)اسم- دَ بلوچستان او سند تر مينځه دَ غرونو سلسله-

پبلسټى:(پب-ل-س-ټى)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نشر و اشاعت- (۲)پروپېګنډه- (م- انګريزى)-

پبلشر:(پب-ل-شر)اسم- واحد- مذکر- دَ چاپ شوو څيزونو دَ خورولو کار کونکے- خورونکے- ناشر- جمع پبلشران- (م- انګريزى)-

پبلشنګ:(پب-لي-شنګ)اسم- شائع کونه- چاپ کونه- خورونه- (م- انګريزى)-

پبلک:(پب-لک)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)عالم- اولس- عوام- عام خلق- قام- (۲- صفت)سرکارى- حکومتى- عوامى-

پبله پورې:(پب-لَ-پو-رې)متعلق فعل- يو بل پورې نښتے- پهٔ يو بل پورې جُخت- پېوست-

پبليکېشن:(پب-لى-کے-شن)اسم- اشاعت- چاپ- خورونه- چاپ شوے څيز- (م- انګريزى)-

پپ:(پپ)اسم- واحد- مذکر- بمبو- هغه مخروطى شکل لرونکې دَ ناوې پهٔ شان اله چې دکاندار پرې پهٔ لفافو کښې سودا اچوى- جمع پپونه-

پپ پپ:(پپ-پپ)اسم صوت- تى تى تى- دَ چرګانو چرګوړو دَ رابللو آواز-

پپخه:(پ-پهٔ-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پپاخه- قراقلى ټوپى- (۲)هغه ګرمه پګړۍ چې غوږونه او څټ پکښې پټېدے شى- ټوپۍ- خولۍ-

پپړ:(پ-پړ)اسم صفت- (۱)پلن- څپاړ- څپړ- تپړ- هغه شے چې بې ډوله وړد وى- (۲)تپيک- تبک-

پپړغوږ:(پ-پړ-غوږ)اسم صفت- پلن غوږے- څپړغوږ- غوږو- تپړغوږ- څپاړغوږے- پلن پلن غوږونه لرونکے- جمع پپړغوږى-

پپړغوږ:(پ-پړ-غوږ)اسم- واحد/جمع- مذکر- يو قسم غرنېز واښهٔ- (افغانستان)-

پپو:(پ-پو)اسم- واحد- مؤنث- ترور- دَ پلار خور- جمع پپوګانې- (ش- هندى)-

پپوس:(پ-پوس)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پرپوس يو قرأت- سږے- شړے-

پپوس:(په-پوس)اسم صفت- ويرندوکے- بزدله- بې همته- جمع پپوسان- مؤنث پپوسه- جمع مؤنث پپوسې-

پپه:(پ-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پپى- پپى- چپى- کوکى- دَ ماشوم ښکلونه- مچکه- مچو- مچه- (۲)روټې- نمرۍ- جمع پپې-

پپى:(پ-پى)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ پپه- (۲)دَ سپى دَ رابللو آواز- (اسم صوت)-

پپيته:(پ-پي-ته)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم خوږه مېوه چې دَ خټکى پهٔ شان وى- دَ ونې خټکے- جمع پپيتې- (م- هندى)-

پپى:(پ-پى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وګورئ پپه- (۲)دَ پاپى دويم قرأت- پښه- (دَ ماشومانو لهجه)-

پت:(پت)اسم- واحد- مذکر- پم- دَ خارښت يو رنځ-

پت:(پت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناموس- عزت- عظمت- وقار- آبرو- (۲)وفا- دَ دوستۍ پالنه- (۳)دود- دستور- (ش- هندى)-

پت:(پت)اسم- جمع- مذکر- دَ ګډو بزو دَ وړدو وېښتو لاندې هغه نرم او پاستهٔ وېښتهٔ چې پټوګان ترې جوړيږى-

پتارى:(پ-تا-رى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مړو ته دَ غسل ورکولو دَ پاره استعمالېدونکې تخته-

پتارى:(پ-تا-رى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- نرى پوله- نرے برید-

پتاړ:(پ-تاړ)اسم- واحد- مذکر- پېتار- هغه لويه ټوکرى چې منځ يُ آزاد وى او وړه خُله لرى- پټور- پټورى- کاره-

پتاړه:(پ-تا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پيشاړه- ملنډه- چړلنډه- مسخره- ټوقه- وشته- جمع پتاړى-

پتاس:(پ-تاس)اسم- واحد- مذکر- دَ پټاس دويم قرأت- وګورئ پټاس-

پتاسه:(پ-تا-سه)اسم- واحد- مؤنث- پټاسه- پتاسه- دشلمه- تشلمه- خوږه او کرپېدونکې دَ بوربوکى پهٔ شان يوه متهانى چې پهٔ مختلفو رنګونو کښې جوړيږى- (م- هندى)-

پتانهٔ:(پ-تا-نهٔ)اسم- واحد- مذکر- دَ پتون مغيره حالت- وګورئ پتون-

پتاڼ:(پتاڼ)اسم- واحد- مؤنث- کودر- پتڼ- پتړ- جمع پتاڼونه- (ش- هندى- تامل)-

پتاؤ:(پ-تاؤ)اسم- واحد- مذکر- دَ پيتاؤ دويم قرأت- وګورئ پيتاؤ-

پتاوه:(پ-تا-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پاتابه- جُرابه- غړے- پنډوغړے-

"ى" (څى-رل)، "ي"(مې-ره-ول)، "ى"(پيا-لى)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

دَ پنډونو ترلو دَ پاره لهٔ وژغنو جوړه کړې پټی- (۲)پیتاوه- هغه نرۍ ځرمن چې دَ پېزار دَ تلي پهٔ سر دَ پښو دَ تلي لاندې لګولے شي- جمع پتاوې-

پتاوے:(پ-تا-وے)اسم- واحد- مذکر- دَ "پیتاوے" دوېم قرأت- وګورئ پیتاوے-

پت پت:(پت-پت)اسمِ صوت- پرت پرت- ترپ پرت- ترتاپرتا- ترتارپرتار- دَ تېز اوازونه-

پت چو:(پت-چو)اسم- واحد- مذکر- دَ کتابونو دَ ساتلو بکسه- کڅوړه- دَ کتابونو کېډۍ- جمع پت چوګان- (افغانستان)-

پتخړی:(پت-خړی)اسم- دَ پیو خرابېدنه-

پتخول:(پت-خ-ول)مصدرِ متعدی- بخپیل- خوله راوستل- (خاص طور سره پهٔ مریض)-

پتخولے:(پت-خ-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پتخولي- مؤنث پتخولې- وګورئ پتخول-

پتخون:(پت-خ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پتخول-

پتخونکے:(پت-خ-ون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پتخونکي- مؤنث پتخونکې- وګورئ پتخول-

پتخونګ:(پت-خ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پتخول-

پتخونه:(پت-خ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پتخول-

پتخه:(پت-خه)اسم- واحد- مؤنث- بته- بتکه- بتخه- بطخه- سائنسی نوم دَ اېناټاډېږے (ANATIDAE) دَ خاندان یو مارغهٔ-

پتخه:(پت-خه)اسم- واحد- مؤنث- تماچه- تومانچه- توپېنچه- تېونچه- توپنچه- جمع پتخې-

پتخے:(پ-تهٔ-خے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پتخے- دَ سپوږي یا خشکۍ پهٔ وجه پهٔ بدن پیدا شوے پوټخے- (۲)وړه ذره- (۳)شړومبو (شوملو) کښې دَ مستو نهٔ حل شوې ذرې- جمع پتخي-

پتراک:(پت-راک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ قتراک-

پتراک:(پت-راک)اسم- واحد- مذکر- دَ لمنې اړولے طرف- جمع پتراکونه-

پترک:(پت-رک)اسم- واحد- مذکر- هغه ګډ چې غوږونه يې نهٔ ډېر لوئ وی او نهٔ ډېر واړهٔ- مؤنث پترکه- جمع مؤنث پترکې-

پترکانے:(پ-تر-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- بجری- باجری- نرے زوړکے کانے- (م- هندی پتهر- کانے)-

پترکله:(پ-تر-ک-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زړې زمانې یو ټوپک- (۲)یونلیز چربدار ټوپک چې لیندی لری- جمع پترکلې- (ش- هندی)-

پترکے:(پت-ر-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ زخم خیږ- پترے- (۲)دَ اسپنې وړوکے پترے- (۳)توتنکے- توتنے-توتنے- جمع پترکي-

پترلاک:(پ-تر-لاک)اسم- واحد- مذکر- دَ لاکو یو قسم-

پتروټے:(پت-رو-ټے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے کنډولے- خاورینه رکیبۍ- جمع پتروټي-

پتروجی:(پت-رو-جی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پترونجی-

پتروکے:(پت-رو-کے)اسم- واحد- مذکر- یو سور ګل لرونکے شین بوټے چې اوم خوړلے شي-

پترونجی:(پت-رون-جی)اسم- واحد- مؤنث- پتروجی- پتوجری- دَ لرۍ نرے قسم چې وړې وړې خانې لری- ککټے-

پتره:(پت-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه دَ بېړوږ کرکېنو یا جاړو بوټو وچې کړے شوې پاڼې چې پهٔ ژمی کښې ګډو، بزو او اوښانو ته دَ بوسو سره شریکې دَ ګیا پهٔ توګه ورکولے شي-

پتری:(پت-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پترے- دَ ګنو او نورو داسې بوټو وچې پاڼې چې دَ سوزولو او دَ ځاروو دَ خوراک پهٔ کار راځی-

پترے:(پت-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خټو یا اسپنې تاپرې یا تامړې- دَ ډال یا کنګل میخ- (۲)پتری- (۳)غوځونه- (۴)پانه- (۵)بلبلې-

پترے:(پت-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پوزې یو پسول- مېخکے- (۲)دَ سرو سپینو وړې وړې پاڼې چې مختلفو پسولونو کښې استعمالیږی- (۳)هغه دَ اسپنې یا ټیم وړه ټکره چې مات څیزونه پرې پیوند کیږی-

پترے:(پت-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ کب یو قسم- جمع پتری-

پترے:(پت-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ کب پهٔ ځرمن واړهٔ واړهٔ غنډ غنډ پتخې- جمع پتری-

پتړ:(پ-تړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پتاړ-

پتک:(پ-تک)اسم- واحد- مذکر- پتک- دَ چوګان پهٔ لوبه کښې استعمالېدونکې ګڼډسکه-

پتک:(پ-تک)اسم- واحد- مذکر- (۱)بتک- بتکے- پتکے- دبکے- دَ اُبو هغه مخصوص لوښے چې دَ سفر پهٔ دوران کښې پکښې اُبهٔ ګرځولے شي- (۲)هغه کاغذ چې تار ترې تاوولے شي- (۲- صفت)کوسه- هغه څوک چې پهٔ مخ وېښتهٔ نهٔ لری-

پتک:(پ-تک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چختمه-

پتکه:(پ-ت-که)اسم- واحد- مؤنث- وړه بطه-

پتکه:(پ-ت-که)اسمِ صفت- پتکے- نرے- مانده- کمزورے سړے-

پتکه:(پ-ت-که)اسم- واحد- مؤنث- پاتکے- پوړی- پټه- پاېتک-

پتکے:(پت-کے)اسمِ صفت- وړوکے- ورکوټے- نرے نروچکے-

پتکے:(پت-کے)اسم- واحد- مذکر- چټے- یوه وړه مرغۍ-

پتکے:(پ-ت-کے)اسمِ تصغیر- دَ پتک اسمِ تصغیر- وګورئ پتک-

پتکے:(پ-ت-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ ځاروو دَ بدن لنډ وېښتهٔ چې پشم يې ووړد نهٔ وی-

پتلون:(پت-لون)اسم- واحد- مذکر- دَ مغربی ملکونو دَ وسېدونکو پرتوګ- پېنټ-

پتله:(پت-له)اسم- واحد- مؤنث- بلورے- مړدکے- مړدکے- تشله- دَ شیشې

نه جوړ مغه غنډ غنډ بلوری چې ماشومان پرې لوبې کوی-

پټلېز:(پټ-لېز)اسم- واحد- مذکر- پټلېس- ټانکه- پېوند- زړو او شلېدلو جامو ته پېوند ورکونه-

پټلېزول:(پټ-لې-ز-ول)مصدر متعدی- (۱)ټانکه لګول- پېوند لګول- پېوندول- پټلېسول- (۲)لېمول- ټانکه کول- کوشېرول-

پټلېزون:(پټ-لې-ز-ون)حاصل مصدر- وګورئ پټلېزول-

پټلېزونکے:(پټ-لې-ز-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پټلېزونکی- مؤنث پټلېزونکې- وګورئ پټلېزول-

پټلېزونګ:(پټ-لې-ز-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پټلېزول-

پټلېزونه:(پټ-لې-ز-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پټلېزول-

پټلېزېدل:(پټ-لې-زې-دل)مصدر لازم- (۱)پېوند لګېدل- ټانکه لګېدل- پېوندېدل- پټلېسېدل- (۲)ټانکه کېدل- لېمېدل- کوشېرېدل-

پټلېزېدن:(پټ-لې-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پټلېزېدل-

پټلېزېدنګ:(پټ-لې-زې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پټلېزېدل-

پټلېزېدنه:(پټ-لې-زې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پټلېزېدل-

پټلېزېدونکے:(پټ-لې-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پټلېزېدونکی- مؤنث پټلېزېدونکې- وګورئ پټلېزېدل-

پټلېزېدۀ:(پټ-لې-زې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پټلېزېدل-

پټلېس:(پټ-لېس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پټلېز-

پټلېسول:(پټ-لې-س-ول)مصدر متعدی- وګورئ پټلېزول-

پټلېسون:(پټ-لې-س-ون)حاصل مصدر- وګورئ پټلېسول-

پټلېسونکے:(پټ-لې-س-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پټلېسونکی- مؤنث پټلېسونکې- وګورئ پټلېسول-

پټلېسونګ:(پټ-لې-س-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پټلېسول-

پټلېسونه:(پټ-لې-س-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پټلېسول-

پت لیک:(پت-لیک)اسم- واحد- مذکر- اعزازی سند- اعزازی رقم- (افغانستان)- جمع پت لیکونه-

پټلېسېدل:(پټ-لې-سې-دل)مصدر لازم- وګورئ پټلېزېدل-

پټلېسېدن:(پټ-لې-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پټلېسېدل-

پټلېسېدنګ:(پټ-لې-سې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پټلېسېدل-

پټلېسېدنه:(پټ-لې-سې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پټلېسېدل-

پټلېسېدونکے:(پټ-لې-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پټلېسېدونکی- مؤنث پټلېسېدونکې- وګورئ پټلېسېدل-

پټلېسېدۀ:(پټ-لې-سې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پټلېسېدل-

پتمن:(پت-من)اسم صفت- پتی- د پت خاوند- عزت من- ابرومند- (پت- ش هندی، من فارسی)-

پتنسے:(پت-ن-سے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پتنوس- (افغانستان)-

پتنګ:(پ-تنګ)اسم صفت- سخی- ارت زړۀ لرونکے- فیاض- فېض رسان- جمع پتنګان-

پتنګ:(پ-تنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)اورپښتے- پتڼ- الوتونکے یو وړوکے چینجے- (۲- صفت)عاشق- مئین-

پتنګ:(پ-تنګ)اسم- واحد- مذکر- بادیوه- باډیوه- بیداوه- ګودی پران- ګوډی- کانکوک-

پتنوس:(پت-نوس)اسم- واحد- مذکر- ټرے- د چایو، شربت یا بل داسې کار د سامان د وړلو د پاره استعمالېدونکې مجمه- فتنوس- فطنوس- جمع پتنوسونه- (م- روسی)-

پتنه:(پت-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فتنه- کینه- دشمنی- بغض- جګړه- شېطانی- عداوت- مخالفت- (۲)فساد- غوبل- شور- (اچول/جوړول مصدرونه)- جمع پتنې-

پتنه دار:(پت-نه-دار)اسم فاعل/صفت- دشمن دار- دشمنی لرونکے-

پتنه داري:(پت-نه-دا-ري)اسم- دشمن داری- دشمنی-

پتنه ګر:(پت-نه-ګر)اسم فاعل/صفت- فتنه ګر- فسادی- لمسونکے- پتنه خورونکے-

پټکینی:(پټ-کی-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پټکنی-

پټنی:(پټ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د وښو غنډی- هغه غنډی چې زیات وابښۀ پکښې زرغن شوی وی-

پتڼ:(پ-تڼ)اسم- واحد- مذکر- پتنګ- اور پښتے-

پتڼ:(پ-تڼ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پټاڼ-

پتوا:(پت-وا)اسم- واحد- مؤنث- د "فتویٰ" عامیانه قرأت- د معنې د پاره وګورئ فتویٰ- جمع پتوې-

پتور:(پ-تور)اسم- واحد- مذکر- سینه بند- تانګ- تانګی- د اس، کچر یا خر د سینې د تړلو د پاره د کپړې یا څرمنې ریښه-

پتوری:(پ-تو-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټوکری- پېټارګے- سبزے-

پتون:(پ-تون)اسم- واحد- مذکر- ادوم- ورون- د پښې هغه حصه چې د زنګانۀ نه سترګې تر مغانو پورې وی-

پتونے:(پ-تو-نے)اسم- واحد- مذکر- د مختلفو رنګونو لرونکے یو خوشبودار ګل چې وړې زړې پاڼې لری- پتونی ګل-

پتونے ګل:(پ-تو-نے-ګل)اسم- وګورئ پتونے-

پتونے:(پ-تو-نے)اسم صفت- اخری سړے- وروستنے- پاندوغ- جمع پتونی-

پته:(پ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)درک- ځاې- ادرس- (۲)صدف- ځلے- نښکه- (۳)ډیمی ډیمی (افغانستان)- (۴)معلوم-

پته:(پ-ته)اسم- واحد- مؤنث- پاڼه- پر- ورقه- د تاش پاڼه- جمع پتې-

پته:(پ-ته)اسم- واحد- مؤنث- لهه- لی- لبهه- خړه- مټه خړه- مټینه خاوره- هغه خټه چې د سېلاب نه وروستو پاتې شی-

پته بازی:(پَ-ته-با-زی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پتې بازی-

پتهٔ:(پَ-تهٔ)اسم- واحد- مذکر- د ارټ مغه تخته چې د جلۍ د مېنځ د پاسه لګېدلې وی-

پتی:(پَ-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شراکت- کاروبار کښې برخه- (۲)د ځنو ځیزونو پاڼې مثلاً د چایو پاڼې-

پتی:(پَ-تی)اسم صفت- پت لرونکے- اتباری- په لېن دېن کښې کره-

پتی:(پَ-تی)اسم- واحد- مذکر- خاوند- مالک- (هندی)-

پتی:(پَ-تی)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پتونے-

پُتی:(پُ-تی)اسم- واحد- مذکر- خیرے- میل-

پتیالے:(پَت-یا-لے)اسم صفت- مذکر- (۱)د پت خاوند- ننګیالے- غیرتی- (۲)د عزت خاوند- غیرتمن- (۲)مغه څوک چې دوستی او اشنائی ښه پالي- جمع پتیالی'پتیالیان-

پتیر:(پَ-تیر)اسم صفت- مغه ماشوم چې د خپل عمر نه زیاتې پخې خبرې کوی- عام طور سره پوخ پتیر یو ځایُ راځی-

پتیره:(پَ-تی-ره)اسم صفت- مؤنث- (۱)د خمبیره ضد- مغه اخښلې اوړهٔ چې د تخمیر عمل پکښې نهٔ وی واقع شوے- (۲)مغه چې هېر وخت پرې نهٔ وی تېر شوے- (۲)ناپائېداره- کچه- (ش- عربی، عبرانی فطیر)-

پتیلکي:(پَ-تیل-کي)اسم- مؤنث- د پتیلې اسم تصغیر- وړوکې پتیله-

پتیلکے:(پَ-تیل-کے)اسم تصغیر- وړوکې پتیله- پتیلکی-

پتیله:(پَ-تی-له)اسم- واحد- مؤنث- د ارتې خُلې دېګچے- (م- هندی)-

پتې:(په-تې)اسم- جمع- مؤنث- د چایو پاڼې- پتی-

پتې باز:(پَ-تې-باز)اسم صفت- (۱)چالاک- غټ ټګ- (۲)جوارګر- تاش کونکے-

پتې بازی:(پَ-تې-با-زی)اسم- واحد- مؤنث- پته بازی- ټګی برګی- چل ول- ټګی ټوری-

پتېره:(پَ-تې-ره)اسم- واحد- مذکر- مغه څوک چې کچه خښتې جوړوی- (م- هندی)-

پتېیل:(پَ-تې-یل)مصدر- اراده کول- نیت کول- تصمیم کول- (افغانستان)-

پتېیلے:(پَ-تې-یهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پتېیلی- مؤنث پتېیلې- وګورئ پتېیل-

پتېینه:(پَ-تې-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پتېیل-

پتېیونکے:(پَ-تې-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پتېیونکی- مؤنث پتېیونکې- وګورئ پتېیل-

پتے:(پَ-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- تپے- ټګی مخے- داغی- قوتی مخے- جمع پتی-

پتے:(پَ-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چتے- (۲- صفت)پتکے- وړوکے قد و قامت لرونکے-

پټ:(پَټ)اسم- واحد- مذکر- د کپړې تان- د رخت تان- جمع پټونه-

پټ:(پټ)اسم صفت- (۱)لپونتوب- (۲- صفت)سرسام-

پټ:(پټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوټ- پوټکے- پوستکے- د ونې وچ پوستکے- د زخم پترے- (۲)پاټکے- پټکه- (۲)پوړ- طبقه- (۴)د اوښ د سینې دواړه اړخونه- (۵)د سپلمی د بوټی مغه حصه چې مچقنو وغېره کښې استعمالیږی-

پټ:(پټ)اسم- واحد- مذکر- د تلې چابړے- جمع پټونه-

پټ:(پټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پیټ- بوج- غم- (۲)لعنت-

پټ:(پټ)اسم- د کونترې د غاړې پټی-

پټ:(پټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)تبه- اپلتې- چټیات- پرتې (افغانستان)- (۲)د ځرمنو د رنګونو مغه رنګ چې د نباتاتو لهٔ پوټکی او ریښو څخه جوړیږی-

پټ:(پټ)اسم صفت- پهٔ دېوالونو کښې ګېر مغه ځایُ چې چت پرې اچولے شوے وی-

پټ:(پټ)اسم صفت- واحد جمع- مذکر- (۱)پناه- نهٔ ښکارېدونکے- پهٔ نظر نهٔ راتلونکے- د ښکاره ضد- (۲)پوښلے- د لوڅ ضد- مؤنث پټه- جمع مؤنث پټې-

پټ:(پټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پټے- (۲)د مړی خاندان ته ورکېدونکې لوپټه یا رقم-

پټاپټ:(پَ-ټا-پټ)متعلق فعل- فټافټ- ژر- سمدستی-

پټاټه:(پَ-ټا-ټه)اسم- واحد- مؤنث- پراټه (د ماشومانو پهٔ ژبه)- جمع پټاټې-

پټاټه:(پَ-ټا-ټه)اسم- واحد- مؤنث- الو- یو قسم ترکاری- نباتاتی نوم سولے نم ټیوسروسم- (ش- انګریزی)-

پټاخ:(پَ-ټاخ)اسم- واحد- مذکر- پټاره- پهٔ لینده کښې د کاڼی ایښوو لهٔ ځرمنې جوړه پټی- جمع پټاخونه-

پټاخ:(پَ-ټاخ)اسم- فخر- لافه-

پټاخدار:(پَ-ټاخ-دار)اسم- واحد- مذکر- د پخوانی زمانې د دارو او پټاخو ټوپک- پټاقدار- پټاخېدار-

پټاخه:(پَ-ټا-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د اتش بازی یو څیز- (۲)د کارتوس پېسه- پټاقه- (۲- صفت)شوخه مسته ښځه یا جینی- چالاکه ښځه یا جینی-

پټاخېدار:(پَ-ټا-خې-دار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پټاخدار-

پټار:(پَ-ټار)اسم- واحد- مذکر- پېټار- ټوکری- مغه لویه ټوکری چې منځ یُ ارت او خُله یُ تنګه وی- جمع پټارونه-

پټار:(پَ-ټار)اسم صفت- (۱)پټېدار- پټوری- پټې پټې- پنډاره- برګ بروګ (ځناور)- (۲)برګ بروګ (مار)-

پټار:(پَ-ټار)اسم- واحد- مذکر- نوار- لهٔ سوتره جوړه مغه پلنه پټه چې پالنګونه پرې بوڼلے شی-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکوڼ)، ه"(ز-ړه)، هٔ"(پو-هې-دهٔ)

پټاره:(پَ-ټا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پټار- نوار- پټی- ترانکه- (۲)دَ څرمنې یا وَنې لهٔ پوټکی جدا شوې تسمه- (۳)کرښه- خط- لیک- (۴)دَ کوکوشتکې دَ مرې پټه- [ پټ (۴) هم وګوره ]- (۵)دَ پټی پهٔ رنګ جوړ پرتوغاښ- جمع پټارې-

پټاره:(پَ-ټا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګوره پټاخ-

پټاری:(پ-ټا-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تونګی- تونۍ- تونګ-

پټاری:(پَ-ټا-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړوکے پټار- پچی- پټوری- خورجین- دَ غاړې کوړے- خلتګی-

پټاس:(پَ-ټاس)اسم- واحد- مذکر- دَ پوټاش یو مرکب- باروت- بارود- دَ کارتوس دارو- یو قسم اور اخستونکې ماده چې دَ ټوپک پهٔ دارو کښې دَ اور لګولو دَ پاره استعمالیږی- (م- انګریزی)-

پټاس:(پَ-ټاس)اسم- واحد- مذکر- پوټاس- پوټاش- پوټاشیم پرمنګنیټ- سرهٔ دارو چې پهٔ زخمونو لګولے شی او یا پرې زخمونه وینځلے شی- (م- انګریزی)-

پټاسه:(پَ-ټا-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ "پتاسه" دوېم قرأت- وګوره پتاسه- جمع پتاسې-

پټاسه:(پَ-ټا-سه)اسم- واحد- مؤنث- اګ- دَ کنو پوګ- څڅبوکے- خوکل-

پټاسیم:(پَ-ټا-سی-یم)اسم- واحد- مذکر- وګوره پوټاسیم-

پټاقدار:(پَ-ټاق-دار)اسم- واحد- مذکر- وګوره پټاخدار-

پټاقه:(پَ-ټا-قه)اسم- واحد- مؤنث- دَ "پټاخه" دوېم قرأت- وګوره پټاخه- جمع پټاقې-

پټاقی:(پَ-ټا-قی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوره پټاخه-

پټاکیدانه:(پَ-ټا-کی-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- بټوه- جیبی بکس- بڅڅکی-

پټاکې:(پَ-ټا-کې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)پټاخ- باټې- لاپې- غړې- (۲)ټوقې- وشتې- پچموزې- ملنډې-

پټاکی:(پَ-ټا-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پټاقی- وګوره پټاخه-

پټ پټانے:(پټ-پهٔ-ټا-نے)اسم- واحد- مذکر- الاداد- پټ پټونے- دَ ماشومانو یوه لوبه-

پټ پټونے:(پټ-پهٔ-ټو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګوره پټ پټانے- جمع پټ پټونی-

پټ پنا:(پټ-پَ-نا)صفت- پټ او یو خوا ته- پوشیده- راز- سازش-

پټ پنهم:(پټ-پن-هم)اسم صفت- خفیه- پټ- پوشیده- دَ نظر نه پهٔ پړه- (پنهم دَ فارسی پنهان)-

پټتیا:(پټ-تیا)اسم- پټوالے- غیبېدنه- لهٔ نظره پنا کېدنه-

پټخ:(پَ-ټخ)صفت- (۱)خیر- کلک- پټوخ- (۲)مړاوے- دَ زوال لهٔ عمله تېرېدونکے- (۳)زوړ- باسی-

پټخوالے:(پَ-ټخ-وا-لے)اسم- کلکوالے- سختوالے- خیروالے- (۲)مړاوېتوب-

پټخول:(پَ-ټَ-خَ-وَل)مصدر متعدی- خیرول- سختول- کلکول- باسی کول- سخا کول- (۲)مړاوے کول-

پټخولے:(پَ-ټَ-خَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پټخولی- مؤنث پټخولې- وګوره پټخول-

پټخونه:(پَ-ټَ-خَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوره پټخول-

پټخه:(پَ-ټهٔ-خه)اسم- واحد- مؤنث- پنګه- سرمایه- هغه سرمایه چې پټه ساتلې شوې وی- موښی- انی موښی- زېره بوږه-

پټخه:(پَ-ټهٔ-خه)اسم- واحد- مؤنث- بخملی- خرګی- پشکالی ګونګټه-

پټخېدل:(پَ-ټَ-خې-دَل)مصدر لازم- (۱)کلکېدل- سختېدل- (۲)باسی کېدل- سخا کېدل- (۳)مړاوے کېدل-

پټخېدن:(پَ-ټَ-خې-دَن)حاصل مصدر- وګوره پټخېدل-

پټخېدنګ:(پَ-ټَ-خې-دَنګ)حاصل مصدر- وګوره پټخېدل-

پټخېدنه:(پَ-ټَ-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوره پټخېدل-

پټخېدونکے:(پَ-ټَ-خې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پټخېدونکی- مؤنث پټخېدونکې- وګوره پټخېدل-

پټخېدهٔ:(پَ-ټَ-خې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوره پټخېدل-

پټخے:(پَ-ټهٔ-خے)اسم- (۱)پتخے- دَ سپوږی یا خشکی ذره- پرچونے- (۲)زړوکے- (۳)الر شان- پوټسکے- بکسکے-

پټ رنګ:(پټ-رنګ)اسم- واحد- مذکر- اترنګ- دَ یو بوټی نامه چې دَ جامو پهٔ رنګولو او ځنې دارو کښې پکاریږی- نباتاتی نوم ایس کلپیس ایکی ناټا-

پټرول:(پټ-رول)اسم- (۱)لهٔ زمکې نه راوتونکې یو خاص قسم تېل چې دَ صفا کولو نه پس دَ مختلفو انجنونو دَ چلولو دَ پاره پکاریږی- (۲)ګشت- (م- انګریزی)-

پټرولی:(پټ-رو-لی)اسم- دَ پټرولو سره متعلق- پهٔ پټرولو چلېدونکے- (م- انګریزی)-

پټری:(پټ-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ مېرزی دَ بوټی تخم او دانې- پټوه- (افغانستان)-

پټری:(پټ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پاټری- پټلی- پټړی- وګوره پاټلی-

پټړ:(پَ-ټړ)اسم صفت- پټ- پټه- بانګ ونیلو ته تیار چرګوټے-

پټ سورے:(پټ-سو-رے)اسم- واحد- مذکر- کنډے- ګذاره- ګذارے- دردمنده- پاټې شوے- کنډی مال- جمع پټ سوری-

پټ سوړے:(پټ-سو-ړے)اسم- وګوره پټ سورے-

پټ غشوے:(پټ-غش-وے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو یوه لوبه چې پهٔ ناسته کولے شی-

پټک:(پ-ټک)اسم- واحد- مذکر- پتک- غنډسکه- غنډسکے- پنډوس-

پټک:(پ-ټک)اسم- جمع- مذکر- دَ کیکر دَ بورې او نرسوی هغه مرکب چې

ی" (خی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګوره تشریحات صفحه ۱

ځرمن پرې صفا کولے شي-

پټک:(پَ-ټَک)اسم- واحد- مذکر- دَ مچوغنې ځله- پنجرکے- پټه- جمع پټکونه-

پټک:(پ-ټک)اسم- واحد- مذکر- دَ خوراک دَ پاره دَ خوږو کولیو یو قسم- ټافی-

پټ کاکے:(پټ-کا-کے)اسم- واحد- مذکر- کرکې- مونړی- دَ ماشومانو یوه لوبه چې پکښې یو لرکے دَ نورو لرکو په ذریعه دَ یوې دائرې نه بهر وباسي-

پټکرے:(پ-ټک-ړے)اسم- واحد- مذکر- خنځ- خاوری- پټکنے- دَ سپینې مالګې په شان یو مرکب چې دارو کښې استعمالیږي- کېمیائی نوم سلفېټ او ایلومینیا-

پټکنډ:(پټ-کنډ)اسم- واحد- مذکر- شکربتې- رونګ- واره- دَ بټو یو قسم-

پټکنے:(پَ-ټک-نے)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پټکرے- خَوری-

پټکونے:(پټ-کو-نے)اسم- کمین ګاه- بځونے- پټکینې-

پټکه:(پټ-که)اسم- واحد- مؤنث- دړکه- کاوړه- دوړه دباؤ- پټله- جمع پټکې-

پټکه:(پَټ-که)اسم- واحد- مؤنث- پټاخ- هغه ځرمن چې نائی پرې پاکی تېروی- جمع پټکې-

پټکه:(پَ-ټه-که)اسم- واحد- مؤنث- کچه پنیر- یو قسم کرُوت- پیرخاړی-

پټکه:(پَټ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تیار- کمربسته- (۲)دَ لټ یو قسم- دَ مرغو نیولو لومه یا دام- (۳)کمربند- ملابند- دَ ملا تړلو پټی- جمع پټکې-

پټکے:(پَټ-کے)اسم- واحد- مذکر- زنانوال ځادر- دَ اغستلو ځادر-

پټکے:(پټ-کے)اسم- واحد- مذکر- لونګی- پګړی- دستار- جمع پټکی-

پټکنی وال:(پټ-ګ-نی-وال)اسم- دَ پټکنی سره متعلق- وګورئ پټکنی-

پټکنی:(پټ-ګ-نی)اسم- پټکینی- پټ ځایُ- ښکار ته پټ ځایْ کښې کښېناستل- مورچه- مورچل- تانه- بورجل- ځوکی- سنګر- بځونے-

پټکوټے:(پټ-کو-ټے)اسم تصغیر- وړوکے پټکے-

پټ لعنت:(پټ-لَع-نَت)اسم- تُف لعنت-

پټله:(پټ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پټکه ۱-

پټله:(پټ-لَه)اسم- واحد- مؤنث- پېړی- کټکے- ځوکی- دَ لرکی ځخه جوړ کړے دَ ناستی کټکے-

پټلین:(پټ-لین)اسم- واحد- مذکر- پلیټن-

پټلی:(پَټ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وګورئ پاټلی (۲)- دَ نهر یا وَلې په غاړه جوړه شوې کچه لاره-

پټم:(پَ-ټَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ اُبو یا وَلې بند- (۲)اُبه ډب کونه- (ش- تامل- هندی)-

پټمخے:(پټ-مهْ-خے)اسم- واحد- مذکر- کنډی مال- دَ غنمو هغه دانې چې دَ غوبل نه پس په وړی کښې پاتې شوی وی- کنډولے-

پټن:(پَ-ټن)اسم- واحد- مذکر- پټنګ- ګودر- بندر- پټڼ-

پټن:(پ-ټَن)اسم- واحد- مذکر- غم- ماتم- ژړا- زیر-

پټنګ:(پَ-ټَنګ)اسم- واحد- مذکر- دَ افغانستان قرأت دَ پټن دَ پاره- وګورئ پټن-

پټنکی:(پَ-ټنګ-کی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پټکنی-

پټڼ:(پَ-ټڼ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پلټن- دَ پیاده فوځ یوه برخه- (۲)کڼ شمېر- (م- انګریزی)-

پټڼ:(پَ-ټڼ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پټاڼ-

پټڼ:(پ-ټڼ)اسم- واحد- مذکر- فریاد- ګیله- شکوه- جمع پټونه-

پټڼ:(پَ-ټڼ)اسم- واحد- مذکر- دَ پټن عامیانه قرأت- وګورئ پټن-

پټو:(پَ-ټو)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېړ وړین ځادر- یو وړین رخت چې لهْ کشمیری ټوک وی خو سور يُ کم وی- (۲)هغه وړینه پټېداره کپړه چې پخوا به ترې زنانهٔ جامې جوړولې- (م- هندی)-

پټوار:(پټ-وار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ زمکو دَ کچ مېچ علم- (۲)دَ پټواری پېشه- (۲)جریب کښ- جریب ګرندے- مرزا- پټواری- جمع پټواران-

پټوار خانه:(پټ-وار-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پټواری دفتر- جمع پټوارخانې-

پټواری:(پټ-وا-ری)اسم- واحد- مذکر- دَ حکومت لهْ طرفه دَ زمکو حساب کتاب ساتونکے- جریب کښ- جریب ګرندے- جمع پټواریان- (م- هندی)-

پټوالے:(پټ-وا-لے)اسم- پټتیا- (۱)ناڅرګند- پوشیده- دَ څرګندوالی ضد- پټېدنه- (۲)دَ لوڅ والی ضد- سَتَر- پرده-

پټوخ:(پَ-ټوخ)اسم- واحد- مذکر- مؤنث پټوخه- جمع مؤنث پټوخې- وګورئ پټخ-

پټوخے:(پَ-ټو-خے)اسم- واحد- مذکر- پټخے- پتخے- پترے- دَ کب په بدن وړې وړې غنډې غنډې نښې-

پټوسکے:(پَ-ټوس-کے)اسم صفت- دَ پوټسکی یو قرأت- پوټسکے- پیځانے- بوچړکے- بټوسکے- بکسکے- لږ شان- جمع پټوسکی-

پټوسکے:(پَ-ټوس-کے)اسم- واحد- مذکر- خټوسکے- ذره- پتخے- پټخے- دَ روټی پوټی- څڅوسکے- خڅوسکے- خڅوزے-

پټوسکے:(پَ-ټوس-کے)اسم- واحد- مذکر- یخدان- دَ ځرمنې صندوق- (افغانستان)- جمع پټوسکی-

پټوکے:(پَ-ټو-کے)اسم- واحد- مذکر- پوټکے- پوستکے- پټ- پوټ- دَ زنې پوست- پټوخے- جمع پټوکی-

پټول:(پهْ-ټ-ول)مصدر متعدی- دَ بدن دَ ځنو حصو هغه عمل چې زخم یا دانه کښې نو پیدا کیږی لکه اُبهْ پټول-

پټول:(پَ-ټول)اسم- واحد- مذکر- یوه حلاله مرغی- (افغانستان)-

پټول:(پهْ-ټَ-ول)مصدر متعدی- کوټه، دالان یا بل کوم عمارت باندې لرګی

اچول-

پټول:(پهٔ-ټ-ول)مصدرِ متعدی- چا ته جامه وراغستل-

پټول:(پهٔ-ټ-ول)مصدرِ متعدی- دَ بل چا مال پهٔ دوکه دَ هغه دَ ملکيته وکښل-

پټول:(پهٔ-ټ-ول)مصدرِ متعدی- پوښل- دَ څيز دَ پاسه داسې پرده اچول چې هغه ترې نهٔ ښکاری- دَ ښرګندول ضد-

پـټـومـهـيـرګ:(پ-ټـو-م-هـی-رګ)اسـم- (۱)ښېره- (۲)نـفـرت- (۳)مـلامـت- (۴)لعنت- (۵)دَ خار ضد- (متروک) (م- هندی پهټکار- مورکهه)-

پـټـون:(پ-ټـون)اسم- واحـد- مـذکـر- (۱)تـلاش- دَ ښکـار پـهٔ تـلاش کښې پـهٔ خـاص ځـائې کښېنـاستل- مورچل- سنګر- څوکی- (۲)څـو- داؤ- (۳)لاره نيوئه- دَ چا دَ وژلو، سپکولو او وهلو دَ پاره ځان پټونه يا لار نيونه- پټکنی- پټکنی- پټکينی-

پټون:(پهٔ-ټ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پټول-

پټونګ:(پهٔ-ټ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پټول-

پټونه:(پهٔ-ټ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پټول-

پټونے:(پـه-ټـو-نـے)اسم- واحد- مذکر- (۱)څـادر- پټو- ورين څادر- شال- (۲)پړونے- جمع پټونی-

پټونے:(پ-ټو-نے)اسم- واحد- مذکر- پټون- هغه پټ ځائې چې ښکاری ترې پهٔ ښکار پرز کوی- جمع پټونی-

پټونے:(پ-ټ-وو-نے/پ-ټو-نے)اسم- واحد- مذکر- پټ پټانے- پټ پټونے- دَ ماشومانو يوه لوبه- جمع پټونی-

پټوه:(پ-ټهٔ-وه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سبزی دانه او تخم- جمع پټوی-

پټوه:(پټ-وه)اسم- واحد- مونث- بټوه- غاړکی- غاړکی- (افغانستان)-

پټوه ګر:(پټ-وه-ګر)اسم- واحد- مذکر- پټواری- علاقه بند- هغه سرکاری نوکر چې دَ زمکو پټو حدبندی او بندوبست کوی- جمع پټوه ګران-

پټوه ګر:(پټ-وه-ګر)اسم- واحد- مذکر- غاړکی جوړونکے- طوق جوړونکے- رېښم ګر- پټولی- جمع پټوه ګران- (افغانستان)-

پټه:(پ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ چړې، تورې او ټوپک دَ کڅوړې تسمه- (۲)پټاخ- دَ نايانو دَ چړې تېرولو څرمن- (۳)دَ سپی دَ غاړی پټی- دَ وړوکيو ځاروو دَ غاړې غاړکی- (۴)دَ ونې پوټ- (۵)تخته- (۶)دَ اندرپائې پاټکے- (۷)بوريا- پټېداره کپړه- (۸)دَ سوداګرې دَ مال وړو راوړو سند- (۹)شکايت- (۱۰)دَ اُسپنې پټی چې دَ ور بندولو دَ پاره پهٔ سورو کښې ورکولے شی- (۱۱)دَ موټر يا لاری کمانی- (۱۲)دَ جواری يوه لوبه- (۱۳)پله- (۱۴)کرښه- خاص طور سره غټه پلنه کرښه- (۱۵)دَ مار دَ تګ پهٔ خاورو پاتې شوې نښه- (۱۶)دَ ملهم پټی- (ش- هندی)-

پټه:(پ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پټړ-

پټه:(پهٔ-ټه)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ پټ مؤنث- وګورئ پټ-

پټه تيکه:(پهٔ-ټه-تی-که)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ پټه دانه ۱- جمع پټې تيکې-

پـټـه دار:(پ-ټـه-دار)اسـم صـفـت- واحـد- مـذکـر- (۱)اقـرارنـامـه سـاتـونـکے- (۲)ټـهـوک دار- (۳)ټـولـی مـشـر- دَ ډلې يـا ټـولـی مـشـر- (۴)کـرايـه دار- (م- هندی)-

پـټـه دار:(پ-ټ-دار)اسـم صـفـت- مـر کـرښې لـرونـکے څـيـز- مؤنث پټه داره- جمع مؤنث پټه دارې-

پټه دانه:(پهٔ-ټه-دا-نه)اسم- دَ اينې ټوکړه چې پهٔ وازده پټه او وريته شوې وی- پټه تيکه-

پټه دانه:(پهٔ-ټه-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- خوراکی دانه- دَ غوښې سرطان-

پټه ګته:(پهٔ-ټه-ګ-ته)اسم- واحد- مؤنث- منځه ګته- دَ ماشومانو يوه لوبه چې پکښې منځه ګته معلومولے شی-

پټه کيټی:(پهٔ-ټه-کی-ټی)اسم- واحد- مؤنث- دَ ملکانو يوه لوبه چې دَ کيټی دَ ويشتو پټ غل پکښې معلومولے شی-

پـټـی پـالا:(پ-ټـی-پـا-لا)اسـم صـفـت- (۱)پـټ پـټـا- پـټـخ- (۲)سـرګـردانـه او حېرانه- سر وهلے بر وهلے-

پټيخ:(پ-ټيخ)اسم صفت- (۱)کلک- سخت- ځيږ- (۲)رسم- برجو- برجی- دَ چړو چاقوانو دَ تېرولو کټه- (افغانستان)-

پټيک:(پ-ټيک)اسم- واحد- مذکر- فټيک- هغه غېر فوځی کار چې دَ فوځ يا پولس پهٔ سپايانو کولے شی- (م- انګريزی)-

پټينه:(پ-ټی-نه)اسم- پټ لرونکے- جمع پټينې-

پـټـينی:(پ-ټی-نی)اسـم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)سره دَ بسترې کټ- دَ بـالښت، تولانی، برستن، دَ کټ څادر او دری وغېره سره- (۲)کټ بشتره- (۳)کټ پوزے-

پټې پيځې:(پهٔ-ټې-پی-ځې)اسم- ټکی- غلا غلتی-

پټېدار:(پ-ټې-دار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- لکيردار- رنګه- رنګينه- پټې پټې- پټې او کرښې لرونکے-

پټېدل:(پهٔ-ټې-دل)مصدرِ لازم- دَ څيز دَ پاسه داسې پرده اچولے کېدل چې هغه ترې نهٔ ښکاری- دَ ښرګندېدل ضد-

پټېدل:(پهٔ-ټې-دل)مصدرِ لازم- دَ بدن دَ ځنو حصو هغه عمل چې زخم يا دانه کښې نو پېدا کيږی-

پټېدل:(پهٔ-ټې-دل)مصدرِ لازم- دَ بل چا مال پهٔ دوکه دَ هغهٔ دَ ملکيته وکښلے کېدل-

پټېدل:(پهٔ-ټې-دل)مصدر- کوټه، دالان يا بل کوم عمارت باندې لرګی اچولے کېدل-

پټېدل:(پهٔ-ټې-دل)مصدرِ لازم- چا ته جامه ور اغستلے کېدل-

پټېدن:(پهٔ-ټې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پټېدل-

پټېدنګ:(پهٔ-ټې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پټېدل-

پټېدنه:(پهٔ-ټې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پټېدل-

پټېدهٔ:(پهٔ-ټې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه-

ټ (ټې-رل)، ټې(ټې-ره-ول)، ټی(پيا-لی)، ټے(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

وګورئ پټېدل-

پټېره:(پ-ټې-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شاه تیر- بش- بېنش- چالی- کړی- چاربوزه- تیر- وېشه- (۲)تمبې- دړه- بوټے- وګے-

پټېلن:(پ-ټې-لن)اسم- واحد- مذکر- د جولاګانو هغه لرګے چې اودلې شوې کپړه ترې تاوولے شي- پټلېن- پلېټن-

پټېمو:(پ-ټې-مو/پټ-ټې-مو)کلمهٔ حېرت- تولعنت- تف لعنت-

پټۍ:(پ-ټۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د پرهر د پاسه تړلې د کپړې ټوټه- (۲)پاڼې- پوټه- (۳)د الف بې پټې- (۴)د ماشومانو سرتړونے- ګکلے- ګکلکے- (۵)تخته- (۶)د ملا تړلو پټه- د کپړې وړه ریبښه- (۷)نوار- پټار- (۸)د مرزو نیولو جال- (۹)د پښې تړلو تسمه-

پټے:(پ-ټے)اسم- واحد- مذکر- پېټے- بوج- وزن- پنډ-

پټے:(پ-ټے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د کر کروندې قابل د زمکې ټکړه- (۲)زرعی جائېداد- جمع پټی-

پچ:(پچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د حجامت چاړهٔ یا مشین- (۲)ټک- زخم- پرهر-

پچ:(پچ)اسم- واحد- مذکر- پچنه- هغه ښکر چې جراحان یٔ د وینې ایستلو د پاره استعمالوی- جمع پچونه-

پجاؤ:(پ-جاؤ)اسم صفت- پېجاؤ- اچه- صفا- سُتره- سوتره- پاکیزه-

پجرک:(پچ-رک)اسم صفت- بڑه بڑه- د غلېبل غندی سورے-

پجرۍ:(پ-ج-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د کانی وړه ټکړه- (م- هندی باجری)-

پجنه:(پ-ج-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پچ ۲-

پجنه:(پ-جهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پچ ۱-

پجول:(پ-ج-ول)مصدر- لغړول- لواړ تېرول-

پجون:(پ-جه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پجول-

پجونکے:(پ-ج-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پجونکی- مؤنث پجونکې- وګورئ پجول-

پجونګ:(پ-ج-زنګ)حاصل مصدر- وګورئ پجول-

پجونه:(پ-ج-زهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پجول-

پجوه:(پ-جهٔ-زه)اسم صفت- پاکه- صفا- سوتره-

پجه:(پ-جه)اسم- واحد- مؤنث- په سیند کښې د جمع شوو کرکو ځایٔ- جمع پجې-

پجه:(پ-جه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پچه-

پخ:(پخ)اسم- واحد- مؤنث- ټک- زخم- پرهر- شګاف-

پخوهل:(پخ-و-هل)مصدر- ځیرل- زخم کول-

پخوهلے:(پخ-و-هٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پخوهلی- مؤنث پخوهلې- وګورئ پخوهل-

پخوهن:(پخ-و-هن)حاصل مصدر- وګورئ پخوهل-

پخوهنګ:(پخ-و-هنګ)حاصل مصدر- وګورئ پخوهل-

پخوهنه:(پخ-و-هٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پخوهل-

پخوهونکے:(پخ-و-هون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پخوهونکی- مؤنث پخوهونکې- وګورئ پخوهل-

پچ:(پچ)اسم- واحد- مذکر- کنک- کناټ- چک- ها- د ها د جنګولو په اصطلاح کښې د سر ضد- هغه ها چې وړد اړخ یٔ مات وی-

پچ:(پچ)اسم- واحد- مذکر- په ښیښه، کانې یا اُسپنه نقش شوے ښکلے او نفیس ګل- (ش- هندی پچی کاری)-

پچ:(پچ)اسم صفت- پُوچ- ضائع- برباد- توی- عبث-

پچاړ:(پ-چاړ)اسم صفت- فحش ګو- کنځل مار- کچرې خبرې کونکے-

پچاړ:(پ-چاړ)اسم- واحد- مذکر- د مېزرو ټوکرې- پچې-

پچاړه:(پ-چا-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)د پچاړ مؤنث- (۲- اسم)کچره خبره- کنځل-

پچاړی:(پ-چا-ړی)اسم- جمع- مؤنث- (۱)وروستو- شا ته- هغه رسی یا پړے چې د اُس وروستو پښو ته اچولے شی- پیچواړی- پچواړی- پچاوړی- پیچواړی-

پچاوړی:(پ-چاؤ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پچاړی-

پچپچونکے:(پچ-پ-چون-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم لوبه- ګته-

پچ ځلے:(پچ-ځلے)اسم صفت- پچاړ- کنځل مار- پوچ ځلے- سپکې او پوچې خبرې کونکے-

پچر:(پ-چر)اسم- واحد- مذکر- پښتی- مات دېوال ته بنیاد سره لګولے شوے امدادی دېوال-

پچړاک:(پچ-ړاک)اسم- واحد- مذکر- کنړه- کېنړه- بړه- سوروزنه- بکه- سرزرنه- بجړه- غل لښی- د پرتاګهٔ هغه ځایٔ چې پرتوغابښ پکښې اچولے شي-

پچکلمه:(پچ-کل-مه)اسم- واحد- مؤنث- پچکولمه- د کدو وغېره وازګینه کولمه- جمع پچکلمې-

پچکولمه:(پچ-کول-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پچکلمه- جمع پچکولمې-

پچموزه:(پچ-مو-زه)اسم- واحد- مؤنث- پیچموزه- ملنډه- پیشاړه- پچمه- ټوقه ټقاله- مسخره- خندا- پچمی- جمع پچموزې-

پچمه:(پچ-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پچموزه- جمع پچمې-

پچمی:(پچ-می)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پچموزې- ملنډې- پیشاړې- ټوقې ټقالې- پچمه-

پچن:(پ-چن)اسم- واحد- مذکر- د سیند په لاره کښې د کاڼو جوړ شوے بند-

پچن:(پ-چن)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپک وجود لرونکے- په بدن کمزورے- (۲)خچن- بدرنګ- سخا- بدشکل- (۳)په پچو لړلے- زیاتې پچې کونکے- مؤنث پچنه- جمع مؤنث پچنې-

پچنکے:(پَ-چنک-کے)اسمِ تصغیر- بچنکے- بچونے- پیچونے- وړوکے- پوټسکے- دَ خناور ډېر وړوکے بچے-

پچنه:(پَ-چهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پچ- دَ حجامت چاړهٔ یا مشین- (۲)دَ حجامت لهٔ وجې پهٔ مخ زخم جوړېدنه- (۳)چړې سره زخمی کېدنه- جمع پچنې-

پچنے:(پَ-چهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سرے چې دَ علاج پهٔ غرض دَ هغهٔ دَ تندی وینه وکښلې شوې وی- (۲)پهٔ نشتر یا چاړهٔ څیرلے زخم-

پچواړ:(پچ-واړ)اسم- (۱)دَ خبرې وروستے سر او دنبال- (۲)دَ بارانهٔ دَ باد او سیلی پهٔ زور دننه راتلونکی څاڅکې- پاچړ-

پچواړی:(پچ-وا-ړی)اسم- جمع- مؤنث- وګوریٔ پچاړی-

پچوچ:(پَ-چوچ)اسم- واحد- مذکر- غمازی- جاسوسي- جمع پچوچونه-

پچوچی:(پَ-چو-چی)اسمِ صفت- غماز- جاسوس- راز معلومونکے- جمع پچوچیان-

پچورے:(په-چو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټیکرے- (۲)لوپټه- (۳)څادر- جمع پچوری-

پچوړه:(پَ-چو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګوریٔ پچاړی-

پچول:(پَ-چول)اسم- واحد- مذکر- بنګړے- کیټی-

پچونے:(پَ-چو-نے)اسمِ صفت- پیچونے- ډېر وړوکے- جمع پچونی-

پچوے:(پَ-چهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پپوے- (۲)دَ غوا پهٔ لکی باندې دَ وېښتو جومپکه- دَ غوا دَ لکی څنډے- (۳)کروړه- چابک- جمع پچوی-

پچه:(پَ-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ونې څانګې چې دَ اړانه شوی چت دَ پاسه اچولے شی-

پچه:(پَ-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ملکانو یوه لوبه- کولشتره-

پچه:(پهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کړو، چپلو، اوښانو، سویو او اوسیو وغېره فُضله چې یو خاص شکل لری- (۲)دَ بنیادم کلک او وچ بول- (۳)دَ ماشوم سوخې- چونې- نونې- پچی-

پچه:(پهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- اسک- دَ وېښ دَ پاره قرعه- جمع پچې-

پچه:(پهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بکیانې دَ ونې وړه غُنډه دانه- شنډی-

پچی:(په-چی)اسم- واحد- مؤنث- چپی- کوکی- خوله- بوسه-

پچیز:(پَ-چیز)اسم- واحد- مذکر- پچسی- دَ بېډیو یوه لوبه- چارخط- قطار- منزرے- زمرے-

پچی کاری:(پچی-کا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ قبض دَ ماتولو دَ پاره یو ډول پېړه شان ستن چې دَ لویو بولو ځایٔ کښې منډلے شی- پېچکاری-

پچی:(پَ-چی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټوکری- دَ مېزری نه جوړه دَ ارتې خلې شکری- سکری-

پچی:(پَ-چی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بوچې- دَ بادرنګو، خټکو او ایندوانو وغېره کچری-

پچی:(پَ-چی)اسمِ صفت- ښکلې- ګلابی- ښائېسته- (افغانستان)-

پخ:(پخ)اسمِ صفت- (۱)دَ تېرهٔ ضد- هغه څیز چې تېرهٔ نهٔ وی- (۲)مړه- سست- بې کاره-

پخانیے:(پَ-ځا-نیے)اسمِ صفت- پیځانیے- ذره- خځوځکے- خځوزے- بکسکے- پوټسکے- پیځنیے- پټوسکے- ډېر لږ- ډېر وړوکے- پټخے- جمع پځانی-

پختوب:(پخ-توب)اسم- دَ "پخ" کېدو حالت- پخ والے- پختیا- پخېدنه-

پختیا:(پخ-تیا)اسم- وګوریٔ پختوب-

پخخه:(پخ-خه)اسم- پسخه- پخسه-

پخکه:(پخ-که)اسم- واحد- مؤنث- چرمه- پلو- پیځکه- پیلځکے- دَ قمیص یا څادر آخری حصه- جمع پځکې-

پخکی:(پَ-ځ-کی)اسم- واحد- مؤنث- وګوریٔ پوځکی-

پخنیے:(پَ-ځهٔ-نیے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګوریٔ پځانیے-

پخوالے:(پخ-وا-لے)اسم- وګوریٔ پختوب-

پخول:(پهٔ-ځ-ول)مصدرِ متعدی- دَ "تېرول" ضد- دَ غوځولو نه ایستل- دَ چاقو، چړې دَ زیات کار لهٔ کبله خله اړول- لهٔ پرېکولو ایستل-

پخون:(پهٔ-ځ-ون)حاصلِ مصدر- وګوریٔ پخول-

پخونکے:(پهٔ-ځ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پخونکی- مؤنث پخونکې- وګوریٔ پخول-

پخونګ:(پهٔ-ځ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ پخول-

پخونه:(پهٔ-ځ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ پخول-

پخونے:(پَ-ځو-نے)اسم- وګوریٔ پټکئی-

پخونے:(پَ-ځ-و-نے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- پهٔ ځؤ کښې- څارو- ځرے-

پخونے:(پهٔ-ځ-وو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پخونی- مؤنث پخونې- وګوریٔ پخول-

پخه:(پَ-ځه)اسم- واحد- مؤنث- پیځه- پیځکه- پخکه- دَ څادر، لوپټې یا قمیص اخری کناره- لمن- پخې- چرمه- پخی-

پخېدل:(پهٔ-ځې-دل)مصدرِ لازم- (۱)دَ تېرهٔ اوزار تېزوالے کمېدل- (۲)ټپېدل- سستېدل-

پخېدن:(پهٔ-ځې-دن)حاصلِ مصدر- وګوریٔ پخېدل-

پخېدنګ:(پهٔ-ځې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ پخېدل-

پخېدنه:(پهٔ-ځې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ پخېدل-

پخېدونکے:(پهٔ-ځې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پخېدونکی- مؤنث پخېدونکې- وګوریٔ پخېدل-

پخېدونے:(پهٔ-ځې-دو-نے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پخېدونی- مؤنث پخېدونې- وګوریٔ پخېدل-

پخی:(پَ-ځی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوریٔ پخه-

پخ:(پخ)اسمِ صفت- پوخ- ځنو مرکبو فعلونو کښې دَ پوخ پهٔ ځایٔ استعمالېدونکے مخفف لکه پخکړے، پخ شوے-

پخ:(پخ)اسمِ صوت- دَ ماشومانو دَ ویرولو اواز- دَ پیشو دَ حملې پهٔ وخت یا

لهٔ ويرې اواز- دَ خندا پهٔ وخت لهٔ پوزې وتونکے اواز-

پخ:(پخ)اسم- واحد- مذکر- لومه- زندی- تېزندی- کمند- پانسی- دام-

پخ:(پخ)صفت/اسم- (۱)پک- کنجے- (۲)پخنتوب- پمن والے- کنجے توب-

پخ:(پخ)اسم- واحد- مذکر- دَ اوښانو يوه بيماري- پُم-

پخاړی:(پَ-خا-ړی)اسم- جمع- مؤنث- پخاړې- مښاوې- دَ کړو دَ لم لاندې پهٔ وړی پوری نښتې اوېزاندې پڅې-

پخ پخ:(پخ پخ)اسم صوت- دَ غلې غلې خندا اواز-

پخ پخ:(پخ-پخ)اسم- کېه (دَ ماشومونو پهٔ ژبه)- (افغانستان)-

پخ پوخ:(پخ-پوخ)اسم صوت- تخ تپوخ- پخ پخ- اُخ تپوخ-

پختکه:(پَخ-تَ-که)اسم- واحد- مؤنث- کوتره- کونتره- کوکو کوتره- کوګوشتکه- کورکوړه- فاخته- ببوغه- بابغه- جمع پختکې-

پختګی:(پخ-تَ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ "پُخته" کېدو حالت- کلکوالے- پخوالے- مضبوط والے- (۲)هوښياری- تجربه کاری-

پختن:(پخ-تَن)اسم- واحد- مذکر- پخلے- پوخوالے- زړېدنه- پخېدنه-

پخته:(پُخ-ته)اسم صفت- (۱)پوخ- (۲)کلک- مضبوط-

پخته کار:(پُخ-ته-کار)اسم صفت- واحد- مذکر- تجربه کار- هوښيار- سيانهٔ- جهان ديده- ګرځېدلے- جمع پخته کاران- مؤنث پخته کاره- جمع مؤنث پخته کارې-

پختين:(پخ-تين)اسم- پخلے- دَ اخلی پخلی چل- دَ پخولو طريقه-

پخچکی:(پخ-چَ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پڅخکی-

پخری:(پخ-ری)اسم- بې اُجرته کار- بې مزده کار- بېګار-

پخری:(پخ-ری)اسم- واحد/جمع- مذکر- يو قسم سپين قندهاری انګور-

پخرے:(پخ-رے)اسم- واحد- مذکر- کودرے- کوړنے- ټوکړه- دَ لوښی ماته ټوټه-

پخړن:(پخ-ړن)اسم صفت- خچن- چخن- چخړن- چخړک- چيخن- څړيخے- چوخړن- چوخن- خچنې سترګې لرونکے-

پخړې:(پخ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- چيخې- چخې- چړيخې- چوخړی-

پخساک:(پخ-ساک)اسم- واحد- مذکر- پسخاک- کړاک- کړاؤ- زړهٔ چاودون- خوارق- خوراک-

پخساکی:(پخ-سا-کی)اسم صفت- دَ پخساک سره متعلق- وګورئ پخساک-

پخسله:(پخ-سله)اسم- واحد- مؤنث- پخه خښته- جمع پخسلې-

پخسول:(پَخ-سَ-وَل)مصدر- پسخول- زميره ول- خوروَل- زړهٔ کښې شوق پېدا کول- لالچ ورکول- رغبت ورکول-

پخسولے:(پخ-سَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پخسولی- مؤنث پخسولې- وګورئ پخسول-

پخسون:(پخ-سَ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پخسول-

پخسونکے:(پخ-سَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پخسونکی- مؤنث پخسونکې- وګورئ پخسول-

پخسونګ:(پخ-سَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پخسول-

پخسونه:(پخ-سَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پخسول-

پخسونے:(پخ-سَ-وو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پخسونی- مؤنث پخسونې- وګورئ پخسول-

پخسه:(پخ-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بخڅه- پسخه- خمبيره شوې خټه- دَ خمبيره شوې خټې چمان- (۲)پخې شوې خټه وريژې- جمع پخسې/پخساوې-

پخسيه:(پخ-سيا)اسم صفت- (۱)سيال- (۲)بهېدونکے- (۲)اُبړن- اُبلن- خوړين څيز-

پخسېدل:(پخ-سې-دَل)مصدرِ لازم- پسخېدل- زيرېدل- لالچ ورکېدل- زړهٔ کښې شوق پېدا کېدل-

پخسېدلے:(پخ-سې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پخسېدلی- مؤنث پخسېدلې- وګورئ پخسېدل-

پخسېدن:(پخ-سې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پخسېدل-

پخسېدنګ:(پخ-سې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پخسېدل-

پخسېدنه:(پخ-سې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پخسېدل-

پخسېدونکے:(پخ-سې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پخسېدونکی- مؤنث پخسېدونکې- وګورئ پخسېدل-

پخسېدهٔ:(پخ-سې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پخسېدل-

پخسے:(پخ-سے)اسم- واحد- مذکر- الګوړے- اړی ګړی- ارګړے- جمع پخسی-

پخشاک:(پخ-شاک)اسم- وګورئ پخساک-

پخښو:(پَ-ښو)اسم مفعول- دَ "پخښلی شوی" متروک شکل-

پخک:(پَ-خک)اسم- واحد- مذکر- کې- پسهٔ-(دَ ماشومانو پهٔ ژبه)-

پخکړے:(پَخ-کهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- نکولے- بوړ- لمدَ بل- لاوڼ- سالڼ- سالن- پوروڼے- ترکاری- پخه کړے شوې ترکاری- جمع پخکړی-

پخکنے:(پخ-کُ-نے)اسم صفت- پخناړے- مشروټے- مشروټک- هغه ماشوم چې پخې پخې خبرې کوی- جمع پخکنی-

پخکی:(پخ-کی)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو دَ ويرولو اواز-

پخل:(پَ-خل)مصدر- دَ درمند ګېړی وېشنل-

پخل:(پَ-خل)مصدر- پهٔ وتره زمکه کښې دَ شولو دَ پټی جوړولو دَ پاره وتره پټی کښې غوايان ګرځول-

پخلا:(پخ-لا)اسم صفت- دَ مرور ضد- رضا- دلاسه- خوښ- خوشحاله-

پخلاتوب:(پَخ-لا-توب)اسم- وګورئ پخلا والے-

پخلا والے:(پُخ-لا-وا-لے)اسم- جوړه- صلح- دَ "مرورتيا" ضد- راضی نامه- دلاسه کونه- پخلاتوب- رضا کېدنه- سره جوړېدنه-

پخلاوے:(پُخ-لا-وے)اسم- واحد- مذکر- اشپز- باورچی- پخونکے- پخاوے-

لنکری- بتیارے- (افغانستان)- جمع پخلاوی-

پخلکے:(پُخ-لَ-کےِ)اسمِ تصغیر- پخناتےِ- مشروټ ماشوم- پخنےِ- جمع پخلکی-

پخلن:(پخ-لَن)اسم- پختن- پختین- نکولے- پخکړے- پخلنګ-

پخلنه:(پخ-لَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پخل-

پخله:(پَ-خَهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- پخلې- توره تپوخلې- شنه تپوخلې- بانکی تپوخلې- دَ ماشومانو دَ تپوخی بیماری-

پخله:(پَخ-له)اسم- مؤنث- هغه پخې یا پاڼې چې دَ غنمو دلو نه وروستو دَ غنمو په وږ کښې پاتې وی- دَ دروزې پم- (افغانستان)-

پخلی:(پخ-لی)اسم- جمع- چخړې- چخې- دَ سترګو چخې- چوخړې-

پخلیت:(پَخ-لیتَ)اسم- دَ عمر پخوالے-

پخلے:(پَخ-لےِ)اسم- واحد- مذکر- دَ "پخول" مصدر نه اسم- (۱)اخلے پخلے- انړی کونړی- (۲)تاکید- پښتی- کلکوالے- جمع پخلی-

پخن:(پهٔ-خن)اسم صفت- (۱)ګنجے- پهٔ سر کښې پخې لرونکے- (۲)پشم دار- (۲)بڼې یا پخې لرونکے- (افغانستان)-

پخن:(پَ-خن)صفت- تړوس- کلک څیزونه لکه اُسپنه، کاڼی وغیره- (افغانستان)-

پخن:(په-خَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پخل ۱-

پخن:(په-خَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پخل ۲-

پخناتےِ:(پخ-نا-تےِ)اسمِ صفت- پخنےِ- پوخناتےِ- مشروټ- مشروټہاک- پخنوکے- پخکنے-

پخندے:(پُ-خن-دےِ)اسم- واحد- مذکر- دَ پښو یو پسول- جمع پخندی-

پخنګ:(په-خَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پخل ۱-

پخنګ:(په-خَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پخل ۲-

پخنوکے:(پخ-نو-کےِ)اسمِ صفت- وګورئ پخناتےِ-

پخنه:(پَ-خهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- یو تریخ بوټے چې دَ ختکو، ایندوانو دَ بوټو پهٔ وېخ کښې پهٔ دې غرض ښخولے شی چې بوټی دَ چینجو نه بچ شی- بوریه- غوربږه-

پخنی:(پخ-نیِ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چنی-

پخنےِ:(پخ-نےِ)اسمِ صفت- وګورئ پخناتےِ- جمع پخنی-

پخنې:(پخ-نې)اسمِ صفت- واحد/جمع- مؤنث- دَ "پخنےِ" مؤنث-

پخوا:(پَخ-وا)صفت/متعلقِ فعل- (۱)تېره شوې زمانه- (۲)هغه واقعه چې دَ حال لهٔ زمانې مخکښې شوې وی- (۲)اګاهو- اول- وړومبے (دَ زمانې پهٔ لحاظ)- (۴)دَ اوس ضد-

پخوالے:(پَخ-وا-لےِ)اسم- (۱)دَ اوم والی ضد- پخلے- (۲)تاکید- کلکوالے- مضبوطیا-

پخوانے:(پَخ-زا-نےِ)صفت- دَ اوسنی ضد- لرغونے- نرغونے- خنړنے- وړومبے- مخکښینے- جمع پخوانی-

پخوانۍ:(پَخ-زا-نۍ)صفت- دَ "پخوانے" مؤنث-

پخوړ:(پَ-خوړ)اسم- واحد- مذکر- دَ شربت، شیرې او داسې نورو څیزونو پاتې شوې اُبهٔ- پس آب-

پخوړ:(پَ-خوړ) اسم- خبېښنه- نښېخنه- پخوړ- دَ کپړو یا بل کوم داسې څیز نه اُبهٔ ایستنه- (افغانستان)-

پخوړل:(په-خو-ړَل)مصدرِ متعدی- وګورئ پخوړول-

پخوړلے:(پَ-خو-ړهٔ-لےِ)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پخوړلی- مؤنث پخوړلې- وګورئ پخوړل-

پخوړن:(پَ-خو-ړَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پخوړل-

پخوړنګ:(پَ-خو-ړَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پخوړل-

پخوړنه:(پَ-خو-ړهٔ-نه))حاصلِ مصدر- وګورئ پخوړل-

پخوړول:(پَ-خو-ړ-وَل)مصدرِ متعدی- پخوړل- دَ څهٔ څیز نه دَ تاوولو پهٔ ذریعه اُبهٔ ایستل- نښېخل- نښتېخل- (افغانستان)-

پخوړونکے:(پَ-خو-ړ-وون-کےِ)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پخوړونکی- مؤنث پخوړونکې- وګورئ پخوړول-

پخول:(پَ-خ-وَل)مصدر- (۱) دَ "پوخ" نه متعدی مصدر- وګورئ پوخ- (۲)دَ خبرې کلکول او ټینګول- ژبه کول- وعده کول- پهٔ څهٔ کار کښې ماهر کول-

پخوله:(پَ-خو-له)اسم- واحد- مؤنث- پخله- توره غاړه- شنه ټخلې- پخولې- بانکی تپوخلې- پخولې- پُخلې- دَ تپوخی یو قسم- جمع پخولې-

پخولیا:(پَ-خول-یا)اسم- واحد- مذکر- پُخلا- راضی-

پخولې:(پَ-خو-لې)اسم- مؤنث- وګورئ پخوله-

پخون:(پَ-خ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پخول-

پخوندے:(پُ-خَن-دےِ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ څاروو دَ پښو تړلو کړی- (۲)دَ تنی کاج-

پخوندے:(پَ-خَن-دےِ)اسم- واحد- مذکر- پخندے- یو قسم پسول- جمع پخوندی-

پخونکے:(پَ-خ-وون-کےِ)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پخونکی- مؤنث پخونکې- وګورئ پخول-

پخونګ:(پَ-خ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پخول-

پخونکړ:(پَ-خونګ-کړ)اسم- واحد- مذکر- تړونه- تړوتکه- کوړې- جمع پخونکړی-

پخونه:(پَ-خ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پخول-

پخونے:(پَ-خ-وو-نےِ)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پخونی- مؤنث پخونې- وګورئ پخول-

پخه:(پَ-خه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)دَ "پوخ" مؤنث- پهٔ اور حرارت یا وخت تیاره شوې- سرې لوې- پخه شوې- (۲)کلکه- (دَ خبرې دَ پاره)- (۲)عمر خوړلې- بوډۍ- زړه- (۴)پخناتې- جمع پخې-

پخه:(پهٔ-خه)اسم- واحد- مونث- (۱)دَ ګنجی دَ سر دَ دانو پتخی- (۲)وفا- بفا- (۳)خشکی- دَ وېښتو یوه بیماری چې دَ مغې پهٔ وجه پهٔ سر کښې

سپین سپین بوس راپیدا شي- جمع پخي-

پخه:(پ-خه)اسم- واحد- مؤنث- پانه- کولی- بنه- جمع پخې-

پخه ورته:(په-خه-وره-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- سوې لوې- سختو او تاړاکونو وهلې- چې د چا رنګ او جوشه د سختیو او خواریو له کبله تکه توره، مخ بې وخته ګونجې ګونجې، کوت کوت او څرمن پخه شوې وی-

پخیل:(پ-خی-یل)مصدر- خوله راوستل- په مریض باندې خوله راوستل- ناروغه خولې کول- پرخیل- پرخیال- پرخبیل-

پخېدل:(پ-خې-دل)مصدر لازم- د بدن د خنو حصو د بیمارۍ په وجه سور رنګ اختیارول-

پخېدل:(پ-خې-دل)حاصل مصدر/لازم- (۱)د اوم څیز په اور یا په بل حرارت یا د وخت په نتیجه کښې تکمیل ته رسېدل- د خوړلو د څیز د خوراک د پاره تیارېدل- (۲)په عمر کښې زوړوالی ته رسېدل- (۳)د مېوې یا فصل شوکولو یا لو ته جوړېدل- (۴)د دانې یا ننکۍ نه نو (زوه) راتلل- (۵)په زړه کښې کرکه یا نفرت پیدا کېدل- ډېر زیات تنګېدل- (۶)د بدن د خنو اندامونو یو بل سره د لګېدو یا بل کوم رنځ له کبله سرۀ کېدل-

پخېدل:(پ-خې-دل)مصدر لازم- په پخ پخ خندل- خټکېدل- کټېدل-

پخېدن:(پ-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پخېدل-

پخېدن:(پ-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پخېدل-

پخېدنګ:(پ-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پخېدل-

پخېدنګ:(پ-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پخېدل-

پخېدنه:(پ-خې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پخېدل-

پخېدنه:(پ-خې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پخېدل-

پخېدونکے:(پ-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پخېدونکی- مؤنث پخېدونکې- وګورئ پخېدل-

پخېدونکے:(پ-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پخېدونکی- مؤنث پخېدونکې- وګورئ پخېدل-

پخېدونے:(پ-خې-دو-نے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پخېدونی- مؤنث پخېدونې- وګورئ پخېدل-

پخېدونے:(پ-خې-دو-نے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پخېدونی- مؤنث پخېدونې- وګورئ پخېدل-

پخېدۀ:(پ-خې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پخېدل-

پخېدۀ:(پ-خې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پخېدل-

پخېل:(پ-خېل)اسم- واحد- مذکر- خوله- بخارات- براس-

پخے:(پۀ-خے)اسم صفت- ګنجے- پخې لرونکے- پمن- پک- خارښتی- جمع پخی/پخیان-

پخے:(پ-خے)اسم- واحد- مذکر- (۱)نوے نوے په خبره راغلے ماشوم-

(۲)کې (د ماشومانو ژبه)-

پدائے:(پ-دا-ئے)اسم صفت- کنډاس-

پدر:(پ-در)اسم- واحد- مذکر- ابا- پلار (عام طور سره یې میاندې خپلو خامنو ته د خپل خاوند په باره کښې طنزاً وائی)- (م- فارسی)-

پدرانه:(پ-د-را-نه)صفت/متعلق فعل- "پدر" سره متعلق- د پلار په شان-

پدره:(پد-ره)صفت- هوار- څلورګټېز- چورس- مهین- یو څلور ګټېز هوار او مهین شے-

پدری:(پ-د-ری)اسم- پدر سره نسبت لرونکے- د پلار له خوا-

پدل:(پ-دل)اسم- واحد- مذکر- د "فضل" مفغن- انعام- قدر- عنایت- عطا- رحم- فضیلت- (م- فضل عربی)-

پدل:(پ-دل)اسم- واحد- مذکر- اثر- اغېزه-

پدم:(پ-دم)اسم- واحد- مذکر- یو زر کروړه-

پدم:(پ-دم)اسم- واحد- مذکر- کنجک دار مار-

پدمنی:(پد-م-نی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د ښځو په څلورو قسمونو کښې یو قسم چې خوشحال بابا یې ترجمه "ګل اندامه" کړې ده- (سنسکرت کښې پدم د نیلوفر ګل ته هم وائی- (۲)ښائسته ښځه چې د عامو خلقو د عقیدې مطابق په چوارپایانو کښې پیدا کیږی-

پدول:(پ-دول)اسم صفت- رقیب- غماز- لمسونکے- چغلی کونکے-

پدولی:(پ-دو-لی)اسم- واحد- مؤنث- د "پدول" کار او رویه- چغلی- شیطانی- غمازی- جمع پدولیانې-

پدی:(پ-دی)اسم- واحد- مذکر- چتے- (مروت)-

پدی:(پ-دی)اسم- واحد- مؤنث- د "پدائے" مؤنث- کنډاسه-

پدید:(پ-دید)صفت- ښکاره- ظاهر- نمایان- (م- فارسی)-

پدیده:(پ-دی-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پېښه- حادثه- حالت- واقعه- (۲)هغه څیز چې طول، عرض او حجم لری- (افغانستان)- جمع پدیدې-

پډاون:(پ-ډا-ون)اسم صفت- تېزن- تیزن- تېزاون- (م- هندی)-

پډو:(پ-ډو)اسم- واحد- مذکر- غرنېزه ګنجې- پېنګ- کجیره- مودمه- پکه باښه- یو مردارخور مارغه- جمع پډوګان-

پډه:(پ-ډه)اسم- واحد- مؤنث- د ولې یو ځنګلی قسم چې بېکاره ګټلے شی- وله- سره وله- زیړه وله- جمع پډې-

پډے:(پ-ډے)اسم صفت- کجے- چوړے- پېډے- کجل- کچل- کږې پښې لرونکے- جمع پډی-

پر:(پر)اسم- واحد- مذکر- ښکه- وزر- بڼه- کونځر- پخه- کوځر- (م- فارسی)-

پر:(پر)اسم صوت- (۱)د الوتو په وخت کښې د مرغو د وزرو اواز- (۲)حرکت-

پر:(پر)اسم- واحد- مذکر- بهګال- د لوخې ګل- د ډیلو بمبل-

پر:(پر)ضمیر منفصل- دپاسه- باندې- د پاسه-

پړ:(پړ)اسم/متعلقِ فعل- لحظه- لږ وخت- فوراً-

پړ:(پړ)حرف- دَ ملامتیا کلمه- جر- دَ تضحیک توری-

پړ:(پړ)اسم- واحد- مذکر- دَ خالی ضد- ډک- پوره- برجق- (م- فارسی)-

پرابسته:(پَ-را-بس-ته)اسم- صف بندی- جنگ-

پراتهٔ:(پړا-تهٔ)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ "پروت" جمع- غزېدلی- څملاستلی- اودهٔ- (۲)ایښوے شوی- (۲)سست- بېکاره- لټان-

پراته:(پړا-تهٔ)اسم صفت- عبث- فضول- چټی-

پراټل:(پړا-ټل)مصدرِ متعدی- (۱)زخمی کول- (۲)رټل-

پراټلے:(پړا-ټهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پراټلی- مؤنث پراټلې- وګورئ پراټل-

پراټن:(پړا-ټن)حاصلِ مصدر- وګورئ پراټل-

پراټنګ:(پړا-ټنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پراټل-

پراټنه:(پړا-ټهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پراټل-

پراټونکے:(پړا-ټون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پراټونکی- مؤنث پراټونکې- وګورئ پراټل-

پراټه:(پَ-را-ټه)اسم- واحد- مؤنث- هغه روغنی روټۍ چې عام طور سره پهٔ تبخی یا کړیچی کښې پهٔ غوړو کښې پخولے شی- دَ تنور پراټه کښې غوړی پهٔ اوړو کښې او دَ تبخی یا کړیځی پراټه کښې پهٔ تبخی یا کړیچی کښې اچولے شی-

پراټيس:(پَ-را-ټيس)اسم- وګورئ پرېکټس- (م- انګریزی)-

پراجېکټ:(پړا-جېکټ)اسم- واحد- مذکر- منصوبه- دَ یو خاص وخت دَ پاره جوړه شوې منصوبه- پروژه (افغانستان)- (م- انګریزی)-

پراجګی:(په-راج-ګی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پراچکۍ-

پراچک:(پَ-را-چک)اسم- واحد- مذکر- پارچه- پرچه- ټوکړه-

پراچکۍ:(پَ-راچ-کهٔ-ۍ)اسم- واحد- مؤنث- دَ "پراچه" مؤنث- وګورئ پراچه- پراجګی-

پراچکے:(پَ-راچ-کے)اسمِ تصغیر- (۱)وړوکے سوداګر- وړوکے تاجر- (۲)دَ پراچه تصغیر- پراچکوټے- جمع پراچکی-

پراچه:(پَ-را-چه)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوداګر- پریچه- پرانچه- (۲)کرایه کش- چې پهٔ کرایه مالونه پهٔ خرو یا خچرو وړی- (۲)هغه هندو چې مسلمان شوے وی او بیا هم دوکان کوی-

پراچه:(پَ-را-چه)اسم صفت- پرانچه- بې لحاظه- بې مخه- چالاک- جمع پراچګان- مؤنث پراچکۍ-

پراخ:(پَ-راخ)اسم صفت- (۱)فراخ- پېراخ- ارت- پلن- وسیع- (۲)ډېر زیات- لوټې لوټې سپېړمې لرونکے- (م- فارسی)-

پراختوب:(پَ-راخ-توب)اسم- (۱)وسعت- پراختیا- پراخوالے- پلن والے- ارتوالے- (۲)ډېروالے- زیاتوالے- (۳)خوشحالی-

پراختیا:(پَ-راخ-تیا)اسم- وګورئ پراختوب-

پراخوالے:(پَ-راخ-وا-لے)اسم- وګورئ پراختوب-

پراخول:(پَ-را-خَ-ول)مصدرِ متعدی- (۱)ارتول- وسعت ورکول- پلنول- وسیع کول- (۲)ډېرول- زیاتول-

پراخون:(پَ-را-خَ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پراخول-

پراخونکے:(پَ-را-خَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پراخونکی- مؤنث پراخونکې- وګورئ پراخول-

پراخونګ:(پَ-را-خَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پراخول-

پراخونه:(پَ-را-خَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پراخول-

پراخی:(پَ-را-خی)اسم- واحد- مؤنث- دَ "پراخ" کېدو حالت- فراخی- زیات والے- ارزانی- کشادګی-

پراخېدل:(پَ-را-خې-دل)مصدرِ لازم- (۱)ارتېدل- ارت کېدل- پلنېدل- پلن والے پېدا کېدل- وسیع کېدل- وسعت موندل- (۲)زیاتېدل- ډېرېدل-

پراخېدن:(پَ-را-خې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پراخېدل-

پراخېدنګ:(پَ-را-خې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پراخېدل-

پراخېدنه:(پَ-را-خې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پراخېدل-

پراخېدهٔ:(پَ-را-خې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پراخېدل-

پراد:(پَ-راد)اسم- واحد- مذکر- دَ غنمو جوارو دَ لو پهٔ موقع پهٔ پټی کښې دَ رېبلو غنمو او جوارو قطار- پراز- جمع پرادونه-

پراړه:(پَ-را-ړه)اسم- واحد- مؤنث- تسمه- دَ هر څیز وړده ټوکړه-

پراړه:(پَ-را-ړه)اسم صفت- خشې- فضول- عبث- جمع پراړې-

پرار:(پَ-رار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ "پرهر" یو قرأت- (۲)فرار شوے- تښتېدلے- (افغانستان)- (م- عربی)-

پرار:(پهٔ-رار)اسمِ صوت- دَ چورلندی، ډمبرې یا مچی دَ وزرو اواز-

پرارپاڼه:(پَ-رار-پا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- پرهر پاڼه- ګزک پاڼه- دَ بارتنګ پاڼه- (افغانستان)- جمع پرارپاڼې-

پرارتوب:(پَ-رار-توب)اسم- پرارتیا- تښتېدنه- لهٔ ملکه وتنه-

پرارتیا:(پَ-رار-تیا)اسم- وګورئ پرارتوب-

پرارژلے:(پَ-رار-ژهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- زخمی- مجروح- پرهارژلے- جمع پرارژلی-

پرارول:(پَ-را-رَ-ول)مصدرِ متعدی- تښتول- لهٔ وطنه ایستل- شړل-

پرارونه:(پَ-را-رَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرارول-

پراری:(پَ-را-ری)اسم صفت- تښتېدلے- فرار شوے- دَ جرم لهٔ ویرې پټ شوے- مفرور- محرور-

پراری:(پَ-را-ری)اسم- پرهری- پرهر لرونکے- زخمی-

پرارېدل:(پَ-را-رې-دل)مصدرِ لازم- خغلېدل- فرارېدل- تښتېدل-

پرارېدنه:(پَ-را-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرارېدل-

پرارېدهٔ:(پَ-را-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب

صیغه- وګورئ پراړېدل-

پراړول:(پَ-را-ړَ-وُل)مصدر- زباتول- زبادول-

پراړولے:(پَ-را-ړَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پراړولی- مؤنث پراړولې- وګورئ پراړول-

پراړون:(پَ-را-ړَ-وُن)حاصلِ مصدر- وګورئ پُراړول-

پراړونکے:(پَ-را-ړَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پراړونکی- مؤنث پراړونکې- وګورئ پُراړول-

پراړونګ:(پَ-را-ړَ-وُنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پُراړول-

پراړونه:(پَ-را-ړَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پُراړول-

پراز:(پَ-راز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پراړ- جمع پرازونه-

پراشوټ:(پَ-را-شوټ)اسم- هوائی چترئ- پیراشوټ- دَ فوځیانو دَ استعمال یوه چترئ چې مغوی پرې دَ جهاز نه لاندې زمکې ته راکوزیږی- جمع پراشوټونه- (م- انګریزی)- (افغانستان)-

پراګراف:(پَ-را-ګراف)اسم- واحد- مذکر- بند- پیراګراف- دَ لیک دَ یوې سُرخی بیلتون- جمع پراګرافونه- (م- انګریزی)- (افغانستان)-

پراګندګی:(پَ-را-ګند-ګی)اسم- پریشانی- انتشار- تشویش- (م- فارسی)-

پراګنده:(پَ-را-ګن-ده)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- منتشر- پریشان- (م- فارسی)-

پرالما:(پَرال-ما)اسم- واحد- مؤنث- لعن طعن- چیړچاړ- جمع پرالمې-

پرانت:(پَرا-نت)فعل- پرانست- (پرانستل نه ماضی مطلق)-

پرانتل:(پَرا-ن-تَل)مصدر- پرانستل- بیرته کول- ایله کول- خرګندول- برخېره کول- خلاصول-

پرانتلے:(پَرا-ن-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرانتلی- مؤنث پرانتلې- وګورئ پرانتل-

پرانتنه:(پَرا-ن-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرانتل-

پرانتے:(پَرا-ن-تے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرانتی- مؤنث پرانتې- وګورئ پرانتل-

پرانچه:(پَ-ران-چه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پراچه-

پرانست:(پَرا-نست)اسم- وګورئ پرانت-

پرانستل:(پَرا-نس-تَل)مصدر- پرانتل- خلاصول- سپړدل- خرګندول- پرانیځل- پرانیستل-

پرانستلے:(پَرا-نس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرانستلی- مؤنث پرانستلې- وګورئ پرانستل-

پرانستنه:(پَرا-نس-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرانستل-

پرانستونکے:(پَرا-نس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرانستونکی- مؤنث پرانستونکې- وګورئ پرانستل-

پرانیتل:(پَرا-نی-تَل)مصدر- وګورئ پرانتل-

پرانیتلے:(پَرا-نی-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرانیتلی- مؤنث پرانیتلې- وګورئ پرانیتل-

پرانیتنه:(پَرا-نی-تهٔ-نه) حاصل مصدر- وګورئ پرانیتل-

پرانیتونکے:(پَرا-نی-تون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرانیتونکی- مؤنث پرانیتونکې- وګورئ پرانیتل-

پرانیتے:(پَرا-نی-تے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- جمع پرانیتی- مؤنث پرانیتې- وګورئ پرانیتل-

پرانیځل:(پَرا-نی-ځَل)مصدر- دَ پرانستل عامیانه قرأت-

پرانیستل:(پَرا-نیس-تَل)مصدر- وګورئ پرانستل-

پرانیستونکے:(پَرا-نیس-تون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرانیستونکی- مؤنث پرانیستونکې- وګورئ پرانستل-

پرانیستنه:(پَرا-نیس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرانستل-

پرانیسته:(پَرا-نیس-ته)اسم- دَ "پرانیستل" مصدر نه اسم- وګورئ پرانستل-

پرانیستهٔ:(پَرا-نیس-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ پرانیستل-

پرانیستے:(پَرا-نیس-تے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- جمع پرانیستی- مؤنث پرانیستې- وګورئ پرانستل-

پراو:(پَراو)اسم- واحد- مذکر- دَ شوروا وغیره نه پاتې شوې اُبهٔ- کنوبے- کونوبے-

پراوړے:(پُرا-وُ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ پوره وړی "قرضداری" وزیری لهجه-

پراوبز:(پَ-را-وبز)اسم- واحد- مذکر- (۱)چربل- دَ منهاؤ دېوال- دَ سربندې دَ مخامخ تخته- (۲)چاوړ- جدائی- (۳)دَ لوپټې، څادر وغیره مغه پیڅه یا څنډه چې ورته فیته یا بله کومه ګلداره کپړه لګېدلې وی- (کوټه)-

پرایمری:(پرایم-ری)صفت- (۱)ابتدائی- اولنے- (۲)دَ تعلیم او مدرسې دَ صفت پهٔ طور استعمالیږی-

پربله:(پَر-بهٔ-له)حرف جار- پهٔ یو بل- (متروک)-

پرپانو:(پَر-پا-نو)اسم- واحد- مذکر- (۱)پرماټن- مره غنې- نباتاتی نوم کوکومیس ګوکومین تهس- (۲)زقوم- نباتاتی نوم یوفوربیاانټی کورم-

پرپته:(پَر-پَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- درک- پته- نښه- ځاې- پل لټون- تفتیش- سراغ- منږ-

پرپر:(پَر-پَر)اسم صوت- (۱)پرار- ترتر- پرپر- درور- (۲)ټرټر- تزتز- یو قسم اواز او غږ-

پرپرانې:(پَر-پهٔ-را-نې)اسم صفت- پرپریے- پرپر کونکے-

پرپرک:(پَر-پَ-رَک)اسم صوت- دَ وزرو وهلو آواز- دَ مرغانو دَ وزرو شورولو اواز-

پرپرکے:(پَر-پَ-رَ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پریے- یو قسم وزر لرونکے چینجے چې اکثر پهٔ ګنو کښې پیدا کیږی او فصل ته نقصان رسوی- (۲)دَ ماشومانو دَ پاره دَ اُسپنې نه جوړ چکر وهونکے پربدار دَ لوبو څیز- (۳)دَ کاغذ نه جوړ دَ ماشومانو دَ لوبو یو څیز چې پکښې ټکے اچولے او بیا دَ هوا پهٔ زور چکر ورکولے شی- (۴)دَ هوائی جهاز موټر وغیره مغه پرزه چې

دَ خپل چکر پهٔ ذريعه مشين پهٔ حرکت کښې راولي-

پرپرے:(پر-پ-رے)اسم صوت- دَ مرغو دَ وزرو اواز-

پرپرے:(پر-پ-رے)اسم- واحد- مذکر- توکه- توقه- شتي- دَ جوارو دَ ووړې مغه شکل چې دانې ترې رژېدلي وي- جمع پرپرې-

پرپوڅ:(پر-پوڅ)اسم- واحد- مذکر- خپل ژړا فرياد، کړاؤ او سخته بيانونه-

پرپېچ:(پُر-پېچ)اسم صفت- لهٔ پېچونو ډک- تاو را تاؤ- پېچدار- ول ول- کوږ ووږ- کلکوتي- (م- فارسي)-

پرپپړه:(پر-پې-ړه)اسم- واحد- مؤنث- خربړے- پوڅکے- دينګرے- مرخېړے- دوړنے- دبرنګ- خوميه- ګوبلکه- ګوجے- ستورے-

پرپے:(پُر-پے)متعلق فعل- پهٔ وس کښې- پهٔ قبضه کښې- (افغانستان)-

پرت:(پ-رت)اسم صفت- (۱)بې حيا- فضول- سست- (۲)شنډ-

پرت:(پرت)اسم صوت- (۱)چرت- دَ توکانو توکلو آواز- (۲)ترت- دَ تيز اواز- (۳)دَ ملامت کولو آواز-

پرت:(پ-رت)اسم صفت- بنديوان- بند- تړلے شوے-

پرتاب:(پر-تاب)اسم- (۱)مغه غشے چې تر لرې ځی- (۲)پرتاب- پرتاو- غورزېدنه- لاندې پرېوتنه- ارتاوېدنه- (م- فارسي)-

پرتاب:(پر-تاب)اسم- دَ غشي لهٔ ليندې نه دَ پرېوتو تر ځايه فاصله- (م- فارسي)-

پرتاکهٔ:(پر-تا-کهٔ)اسم- واحد- مذکر- دَ "پرتوګ" مغيّره شکل-

پرتال:(پر-تال)اسم- واحد- مذکر- دَ پرتال دوېم قرات- لټون- لټونه- غور- (م- مندي)-

پرتاؤ:(پر-تاؤ)اسم- واحد- مذکر- ارتاو- ارتاؤ- لرې غُرزونه- پهٔ تادی ويشتنه- برتاؤ- جمع پرتاوونه-

پرت پرت:(پرت-پرت)اسم صوت- پرت پروت- پرتار- دَ تيزونو اواز- (مصدر- کول)-

پرت پروت:(پرت-پروت)اسم صوت- وګورئ پرت پرت-

پرتکه:(پر-تَ-که)اسم- پرتکه- ترپکه- پرمېدنه- مغه اواز چې مارغهٔ يُ لهٔ وزرو دَ نيولو يا دَ حلالېدلو پهٔ نتيجه کښې پيدا کوي- جمع پرتکې-

پرتل:(پر-تل)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېش خانه- مغه سامان چې کوچيان يُ دَ کوچ نه مخکښې ليږی- (۲)دَ ماشومانو دَ بلورو، غزانو لوبه- (۳)دَ غزانو دَ لوبې يوه اصطلاح چې دَ تيک دَ ايسارولو دَ پاره دَ خوښې دَ استعمال اظهار ترې کيږي- (۴)دَ نښتر او ننذر تر منځه يوه وُنه- (۵)دَ ساروان اوښ دَ پاسه تړلې ترنګړ-

پرتل:(پر-تل)مصدر- غُرځېدل- لوېدل- پرځېدل- پرځل- ځملاستل-

پرتل:(پر-تَل)اسم- پرلت- (۱)دَ ناستې مغه طريقه چې دواړه پښې پکښې وغځولې شي- (مصدر- پرتل غزول)- (۲)انډی- (مصدر-وهل) پرلت وهل-

پرتله:(پر-تَ-له)اسم- واحد- مؤنث- پټه- مغه تسمه چې توره پکښې ځوړنده وي- جمع پرتلې- (م- مندي)-

پرتله:(پر-تهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مقابله- مقاليسه- موازنه- (افغانستان)- (کول/کېدل مصدرونه)-

پرتليز:(پر-تليز)اسم صفت- واحد/جمع- نسبی- قاميز- مقاليسوی- لهٔ کورنئ ځخه- لهٔ خپله- لهٔ قبيلې- (افغانستان)-

پرتم:(پر-تَم)اسم- واحد- مذکر- دبدبه- شان و شوکت- روب- جلال- رُعب- مېبت- ويره- (افغانستان)-

پرتمين:(پر-تَ-مين)اسم صفت- رعب ناک- روبناک- دَ شان او دبدبې خاوند- مېبت ناک- دَ شان و شوکت ځښتن- باوقار- بارعبه- درونډ خوږ- (افغانستان)-

پرتو:(پر-تو)اسم- واحد- مؤنث- رڼا- شعاع- (م- فارسي)-

پرتو:(پر-تو)حاصل مصدر- پرېواتهٔ- ارتاؤ- پرتاؤ-

پرتوغاښ:(پر-تو-غاښ)اسم- پرتوګاښ- لال- ناړه- زراحت- بګه- ازاربند- ګنډه- دَ پرتوګ دَ تړلو مغه جالي دار مزے چې بډه کښې اچولے شي- جمع پرتوغاښونه-

پرتوګ:(پر-توګ)اسم- واحد- مذکر- پرتوګ- پائجامه- مغه لباس چې دَ نامهٔ نه لاندې تر ښنګرو او ښپيو پورې اغستلے کيږي-

پرتوګاښ:(پر-تو-ګاښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرتوغاښ-

پرتوګے:(پر-تو-ګے)اسم تصغير- دَ پرتوګ اسم تصغير- وګورئ پرتوګ-

پرتول:(پر-تَ-ول)مصدر- (۱)دَ غوږ سورے بندول- (۲)ضائع کول- بربادول-

پرتول:(پر-تَ-ول)مصدر- ترتول- پتول- غوول- بدکاری کول- عام طور سره دَ کنځلو دَ پاره استعماليږي- ۲-

پرتولے:(پر-تَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرتولي- مؤنث پرتولې- وګورئ پرتول ۱-

پرتولے:(پر-تَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرتولي- مؤنث پرتولې- وګورئ پرتول ۲-

پرتون:(پر-تَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پرتول ۱-

پرتون:(پر-تَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پرتول ۲-

پرتونکے:(پر-تَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرتونکي- مؤنث پرتونکې- وګورئ پرتول ۱-

پرتونکے:(پر-تَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرتونکي- مؤنث پرتونکې- وګورئ پرتول ۲-

پرتونه:(پر-تَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرتول ۱-

پرتونه:(پر-تَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرتول ۲-

پرتونے:(پر-تو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ غاړې يو پسول- جمع پرتونې-

پرته:(پ-رَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- عبث- فضول- ترته- فضول خبره- اپلته- چټيات-

پرته:(پر-ته)حرف- بغير- سوا- بې لهٔ دې-

پرته:(پر-ته)اسم- واحد- مؤنث- تاې- تهه- (م- مندي- پرت)-

ئ (ځی-رل)، ئ (مي-ره-ول)، ې (پيا-لې)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

پرته:(پَر-ته)صفت- بهر- وړاندې- مخکښې- عام طور سره د ستړګو د صفت په طور راځي-

پرته پرته:(پَر-ته-پَر-ته)صفت (مرکب)- نېغ نېغ- تېغ تېغ- وګورئ پرته-

پرتهار:(پر-تَ-هار)اسم صوت- تړته هار- تړتړ- د تېز اواز-

پرتېدل:(پَر-تې-دَل)مصدر- د غوړ سوري بندېدل- ضائع کېدل-

پرتېدل:(پَـر-تـې-دَل)مصدر- (۱)مسخره کېدل- د مخ جُثه ورانېدل- (۲)تېرېدل- تېزونه اچول- (۳)دروغ ونېل- (۴)د مرغۍ د الوتو کوشش کول-

پرتېدلے:(پَر-تې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرتېدلی- مؤنث پرتېدلې- وګورئ پرتېدل ۱-

پرتېدلے:(پَرَ-تې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرتېدلی- مؤنث پرتېدلې- وګورئ پرتېدل ۲-

پرتېدن:(پَر-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل ۱-

پرتېدن:(پَرَ-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل ۲-

پرتېدنګ:(پَر-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل ۱-

پرتېدنګ:(پَرَ-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل ۲-

پرتېدنه:(پَر-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل ۱-

پرتېدنه:(پَرَ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل ۲-

پرتېدونکے:(پَر-تې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرتېدونکی- مؤنث پرتېدونکې- وګورئ پرتېدل ۱-

پرتېدونکے:(پَرَ-تې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرتېدونکی- مؤنث پرتېدونکې- وګورئ پرتېدل ۲-

پرتېدهٔ:(پَر-تې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پرتېدل ۱-

پرتېدهٔ:(پَرَ-تې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل ۲-

پرجغ:(پَر-جَغ)اسم- برجک- ړک پک- ړک ړوک- سر تر سره- تر غړۍ غړۍ- انجغړی- نوک د څوکه- هېر ړک چې بیخی پکښې نور څهٔ نهٔ ځائېږي-

پرخر:(پر-خَر)اسم صفت- وګورئ پرېخر-

پرخول:(پَـر-خـه-وَل)مصدر- (۱)پهٔ زمکه راخلاصول- غرزول- نسکورول- پرتاوول- (۲)شکست ورکول-

پرخولے:(پَر-خُ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرخولی- مؤنث پرخولې- وګورئ پرخول-

پرخون:(پَر-خُ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پرخول-

پرخونکے:(پَر-خُ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرخونکی- مؤنث پرخونکې- وګورئ پرخول-

پرخونګ:(پَر-خُ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرخول-

پرخونه:(پَر-خُ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرخول-

پرخونې:(پَر-خو-نې)اسم جمع- کشتی-

پـرخېـدل:(پَـر-خـې-دَل)مصدر لازم- پـهٔ زمکـه راخـلاصېـدل- نـسکـورېـدل- پرتاوېدل-

پرخېدن:(پَر-خې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ پرخېدل-

پرخېدنګ:(پَر-خې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرخېدل-

پرخېدنه:(پَر-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرخېدل-

پرخېدونکے:(پَر-خې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرخېدونکی- مؤنث پرخېدونکې- وګورئ پرخېدل-

پرخېدونے:(پَر-خې-دُو-نے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرخېدونی- مؤنث پرخېدونې- وګورئ پرخېدل-

پرخېدهٔ:(پَر-خې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پرخېدل-

پرچ:(پَرَچ/پِرَچ)اسم- واحد- مذکر- رکېبی- نالبکے- نالبیکے- د چایو د پیالۍ سره وړوکے شان لوښے چې پیالۍ پکښې پرته وی- جمع پَرچونه/پِرچونه-

پرچ:(پَرَچ)اسم صوت- (۱)انتروشے- انتوشے- پرنجے- نړے- پرچیمے- (۲)د موسی د منډې پهٔ وخت اواز- (مصدر- وهل)-

پرچال:(پَر-چال)اسم- واحد- مذکر- (۱)کوټ- د قلا دېوال- بلۍ- د قلا د دېوال د تیرو چجه- (۲)د دېوال پهٔ سر د موړو قطار- جمع پرچالونه-

پرچاؤ:(پَر-چاؤ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پارچاؤ-

پرچتی:(پر-چَ-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پرچتے-

پرچتے:(پر-چَ-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د دېوال چجه- د دېوال بلۍ- څنډلی- سردو- پرچټی- (۲)لبو- اخېړ (افغانستان)- جمع پرچتی-

پرچټی:(پَر-چَ-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پرچتی- سرماتے- منډېری- چجه-

پرچغه:(پر-چهٔ-غه)اسم- واحد- مؤنث- ترازه- تېیزه-

پرچک:(پر-چَک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پراوېز- جمع پرچکونه-

پرچکی:(پر-چَ-کی)اسم تصغیر- وړوکې ټوکره-

پرچل:(پر-چَل)اسم- سخا مېوه- پاتې شوې سخا مېوه-

پرچل:(پَرهٔ-چَل)مصدر- نړی کول- انتروشی کول- پرنجی کول- پرچ وهل-

پرچم:(پر-چَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)بېرغ- جنډه- جنډاله- توغ- خپوړے- بُربُره- (۲)زلف- کاکل- (۳)د غوا د لکۍ څنډے- جمع پرچمونه- (م- فارسی)-

پرچنګ:(پَرهٔ-چَنګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرچنه- (۲)حاصل مصدر- وګورئ پرچل-

پرچنه:(پَرهٔ-چهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پرچ- انتوشے- انتروشے- پرنجے- نړے- پرچنګ- (۲)حاصل مصدر- وګورئ پرچل-

پرچنی:(پر-چهٔ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پهٔ کچه دېوالونو د وښو چت-

پرچوخے:(پر-چو-خے)اسم- واحد- مذکر- پوټکے- پتخے- پټخے- خېړ-

خنډ- پترې- پترکې- دَ زخم پټ-

پرچول:(پَرهٔ-چ-وَل)مصدر متعدی- (۱)نری وروستل- پرچې وروستل- پرنجې وروستل- انتوشی وروستل- پهٔ پرچنګ راوستل- (۲)وګورئ پرتول-

پرچولے:(پَرهٔ-چ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرچولی- مؤنث پرچولې- وګورئ پرچول-

پرچون:(پَرهٔ-چ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پرچول-

پرچون:(پَر-چُون)اسم- واحد- مذکر- پرچوڼ- دَ "تول" ضد- خورده- پهٔ يو ځايُ دَ خرڅولو پهٔ مقابله کښې پهٔ لږه لږه دَ خرڅولو کار او پيشه- (م- هندی)-

پرچونکے:(پَرهٔ-چ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرچونکی- مؤنث پرچونکې- وګورئ پرچول-

پرچونګ:(پَرهٔ-چ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرچول-

پرچونه:(پَرهٔ-چ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرچول-

پرچونے:(پَر-چو-نے)اسم- پرچون (دَ تول يا يو ځايُ ضد)- لږ لږ- برخه برخه- ونډه ونډه- وګورئ پرچون-

پرچوڼ:(پَر-چوڼ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرچون-

پرچه:(پَر-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کاغذ ټوټه- (۲)اخبار- رساله- (۳)پُرزه- ټکړه- پارچه- (۴)خط- چيټۍ- رُقعه- تحرير- (۵)دَ امتحان سوالنامه- (۶)دَ مقدمې پهٔ حقله دَ پوليس اندراج- (۷)ليکلے کاغذ- جمع پرچې-

پرچېدل:(پَرهٔ-چې-دَل)مصدر متعدی- (۱)پرنجے کول- نری کول- ترنجېدل- پرنجې کول- پرشی کول- انتوشی کول- پرچېمې کول- (۲)وګورئ پرتېدل-

پرچېدن:(پَرهٔ-چې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل-

پرچېدنګ:(پَرهٔ-چې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل-

پرچېدنه:(پَرهٔ-چې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل-

پرچېدونکے:(پَرهٔ-چې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرچېدونکی- مؤنث پرچېدونکې- وګورئ پرچېدل-

پرچېدهٔ:(پَرهٔ-چې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پرچېدل-

پرچېمے:(پر-چې-مے)اسم- واحد- مذکر- انتروشے- وګورئ پرچ- جمع پرچېمې-

پرچے:(پَرهٔ-چے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرچ-

پرڅاره:(پر-څا-ره)اسم- واحد- مؤنث- پړينګ- دَ خېتې دننه طرف ته يوه نرۍ جلۍ- جمع پرڅارې-

پرڅل:(پَر-څَل)مصدر- دَ خېرات دَ پاره منت منل-

پرڅلے:(پَر-څهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرڅلی- مؤنث پرڅلې- وګورئ پرڅل-

پرڅن:(پَر-څَن)حاصل مصدر- وګورئ پرڅل-

پرڅنګ:(پر-څَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرڅل-

پرڅنه:(پر-څهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرڅل-

پرڅونکے:(پَر-څون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرڅونکی- مؤنث پرڅونکې- وګورئ پرڅل-

پرخ:(پَ-رَخ)اسم- واحد- مذکر- دَ "فرق" عاميانه قرأت- وګورئ فرق-

پرخ:(پَرخ)اسم صوت- دَ خُلې پهٔ ذريعه دَ اُبو ويشتلو اواز-

پرخاړه:(پر-خا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پخه- بڼه- پر- جمع پرخاړې-

پرخاش:(پَر-خاش)اسم- واحد- مذکر- (۱)دښمنی- (۲)جنګ- (۳)مخالفت- (۴)مقابله- (۵)جګړه- (۶)ورانے- (۷)کينه- (۸)فساد- (م- فارسی)-

پرخانه:(پر-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غشی مغه ځايُ چرته چې دَ غشی وزرې لګېدلې وی- جمع پرخانې-

پرخاږ:(پَر-خاږ)اسم- واحد- مذکر- پونه- ترشّح-

پرخټ:(پر-خټ)اسم- واحد- مذکر- پهٔ نکولی کښې ماته شوې روټۍ-

پرخټ:(پر-خټ)اسم- واحد- مذکر- پهٔ کړس کړس خندا- کټ کټ خندا- پهٔ زوره خندا- (افغانستان)-

پرخم:(پَر-خم)اسم- واحد- مذکر- (۱)جومپک- ګڅه- دَ لکی وېښے- دَ څارو دَ لکۍ څوڼړے- (۲)مچ شړ- چوری- مچ شړونے- (افغانستان)-

پرخم:(پر-خَم)اسم- واحد- مذکر- پرچم- توغ- جنډه- بېرغ- (افغانستان)- جمع پرخمونه-

پرخول:(پَر-خ-وَل)مصدر متعدی-پوکل- پوړل- شيندل- پونه کول- دَ اُبو پاشل-

پرخون:(پَر-خ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پرخول-

پرخونکے:(پَر-خ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرخونکی- مؤنث پرخونکې- وګورئ پرخول-

پرخونګ:(پَر-خ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرخول-

پرخونه:(پَر-خ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرخول-

پرخه:(پَر-خه)اسم- مؤنث- (۱)شبنم- دَ شپې چې کوم څاڅکی دَ اسمان نه راپريوځی- (۲)بورمک- نرے باران-

پرخېدل:(پَر-خې-دَل)مصدر- دَ پرخې هسې ورېدل-

پرخېدلے:(پَر-خې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرخېدلی- مؤنث پرخېدلې- وګورئ پرخېدل-

پرخېدنه:(پَر-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرخېدل-

پرخېدهٔ:(پَر-خې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پرخېدل-

پرخېل:(پر-خېل)اسم- وګورئ پرخيال-

پرخيال:(پَر-خيال)اسم- پرخېل- پُخېل- خولې کونه- پهٔ رنځور خولې راوستنه-

پرخيز:(پر-خيز)اسم صفت- فرق کونکے- بې انصافه- مؤنث پرخيزه- جمع مؤنث پرخيزې-

پرخے:(پر-خے)اسم صفت- دَ ضرورت نه زیات-
پرخے:(پر-خے)اسم- واحد- مذکر- دَ خرهٔ دَ کتې موړه-
پرداخت:(پر-داخت)اسم- غور فکر- توجه- پروا- (م- فارسی)-
پردار:(پر-دار)اسم صفت- (۱)وزر لرونکے- (۲)دَ الوتو جوګه- (۳)ازادی خوښونکے- (م- فارسی)-
پرداز:(پر-داز)لاحقه (اصل پرداختن نه فعلِ امر)- دَ ځنو اسمونو نه پس دَ سمبالونکی، انتظام کونکی یا ښکلی کونکی معنیٰ پیدا کوی مثلاً کارپرداز وغیره-
پرداکهٔ:(پر-دا-کهٔ)اسم- واحد- مذکر- دَ "پرتاکهٔ" دویم قرأت- وګورئ پرتوګ-
پردل:(پر-دل)اسم- واحد- مذکر- پلېټ- فلېټ- تالے- رکېبی- کنډول- (م- فارسی)-
پردوګ:(پر-دوګ)اسم- واحد- مذکر- دَ "پرتوګ" یو قرأت- وګورئ پرتوګ-
پرده:(پر-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پړده- ستر- حجاب- حیا- (۲)پټ راز- پناهی- (۳)دَ غوږ جلی- دَ سترګو جلی- (۴)دَ دوو حصو بېلونکے نازک حائل- (۵)دَ فقیرانو په اصطلاح کښې پیر وفات کېدنه- (۶)دَ کړکیو او دروازیو دَ پټولو کپړه- (۷)پردهٔ بکارت- دَ کوټې دَ پاسه تاؤ دېوال- (م- فارسی)-
پرده:(پر-ده)اسم صفت- پورده- پړده- پوړده- پړ- مجبور- پابند-
پرده:(پر-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ موسیقی سُر یا آواز- نغمه- دَ باجې (ارمونیم) یا نور داسې دَ موسیقی آلاتو دَ غړولو دَ پاره دَ ګتو ځایُ- جمع پردې-
پرده پوش:(پر-ده-پوش)اسم صفت- وګورئ پرده پوښ- (م- فارسی)-
پرده پوشی:(پر-ده-پو-شی)اسم- پرده ساتنه- پرده اچونه- راز نهٔ ښکاره کونه- پرده داری- (م- فارسی)-
پرده پوښ:(پر-ده-پوښ)اسم صفت- پرده پوش- پرده ساتونکے- پرده اچونکے- پرده داری کونکے- (م- فارسی)-
پردهٔ دار:(پر-ده-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- پرده کونکے- حیاناک- راز ساتونکے- پرده کونکے- جمع پرده داران- مؤنث پرده داره- جمع مؤنث پرده دارې-
پرده داری:(پر-ده-دا-ری)اسم- پرده ساتنه- راز نهٔ ښکاره کونه-
پردېس:(پر-دېس)اسم- واحد- مذکر- بېګانه ملک- پردے وطن- (م- هندی)-
پردېسنه:(پر-دې-سهٔ-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ پردېسی مؤنث- دَ بل وطن ښځه- جمع پردېسنې-
پردېسی:(پر-دې-سی)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ غېر ملک- دَ پردی ملک- دَ بېګانه وطن- مؤنث پردېسی/پردېسنه- (م- هندی)-
پرړ:(پ-رړ)اسم صفت- غټ کټ- مضبوط- کټه- سخت- پېړ- پرپړ- پلن- مؤنث پرړه-
پرړه:(پر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ړزه ړوزه- ټوکه- وشته- ړوزه- باټه- دروغ ربنتیا- لاف و ګزاف- لاپه شاپه- غرې ترې- (۲)هغه کوتره چې وزرونه ترې قېنچی شوی وی او دَ نورو کوترو دَ را کوزولو دَ پاره استعمالیږی- جمع پرړې-
پرړی:(پر-ړی)اسم- واحد- مؤنث- وبا- بابو- هېضه- دَ قی دست بیماری-
پرړېدل:(پر-ړې-دل)مصدرِ لازم- (۱)پړکېدل- تړکېدل- تړپېدل- پړقېدل- ناقلاره کېدل- دَ ازادېدو یا دَ ځان دَ خلاصولو کوشش کول- دَ مرغی پهٔ جال کښې وزرې یا ځانګونه وهل- (۲)ړېږې پهٔ ړېږې اوړېدل-
پرړېدلے:(پر-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرړېدلی- مؤنث پرړېدلې- وګورئ پرړېدل-
پرړېدن:(پر-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرړېدل-
پرړېدنګ:(پر-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرړېدل-
پرړېدنه:(پر-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرړېدل-
پرړېدونکے:(پر-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرړېدونکی- مؤنث پرړېدونکې- وګورئ پرړېدل-
پرړېدهٔ:(پر-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پرړېدل-
پرزو:(پر-زو)اسم- دَ زړهٔ خوښه- پرزوینه- سود- چا سره دَ ښهٔ سلوک کولو دَ پاره خواهش-
پرزوینه:(پر-زو-یهٔ-نه)اسم- وګورئ پرزو-
پرزه:(پر-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټوټه- ټکړه- حصه- (۲)دَ فېشن سامان- (۳)رقعه- دَ کاغذ ټوکړه- جمع پرزې-
پرس:(پرس)اسم- واحد- مذکر- بټوه- دَ زنانهٔ دَ سامان وغېره ایښوو بټوه- (م- انګریزی)-
پرس:(پرس)اسم- واحد- مذکر- پښتنه- تپوس- تحقیق- پرسان- (م- فارسی)-
پرسان:(پر-سان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرس- (م- فارسی)-
پرست:(پ-رست)لاحقه- دَ پرستش (عبادت، محبت) پهٔ معنو کښې دَ بل اسم سره لاحقه لکه خدا پرست، وطن پرست وغېره-
پرستار:(پ-رس-تار)اسم صفت- (۱)عبادت کونکے- پرستش کونکے- (۲)عاشق- مئین- (۳)مرئیے- جمع پرستاران- مؤنث پرستاره- جمع مؤنث پرستارې-
پرستاره:(پ-رس-تا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ پرستار مؤنث- وینځه-
پرستاری:(پ-رس-تا-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)عبادت- خدمت- (۲)دَ ناروغ پالنه- دَ ناروغو خذمت او پالنه- دَ نرس وظیفه- (۳)غمخوری- (افغانستان)-
پرستان:(پ-رس-تان)اسم- واحد- مذکر- دَ ښاپېرو وطن- یو خیالی او افسانوی ملک-
پرستش:(پ-رس-تش)اسم- عبادت- اطاعت- بندګی- تعظیم- (م- فارسی)-

پرستی:(پَ-رس-تی)لاحقه- دَ "پرست" دَ لاحقې يو بل شکل چې د خپل خان نه مخکښې لفظ سره دَ عبادت او محبت کولو دَ کار مفهوم ورکوی لکه، خدا پرستی، وطن پرستی وغيره-

پرسد :(پُر-سُد)اسمِ صفت- پوهه- هوښيار- عقلمند- (افغانستان)- (دَ بې سُد ضد چې استعمال کښې نهٔ راځی-)-

پرسدتوب:(پُر-سُد-توب)اسم- پرسدوالے- هوښياری- هوښيارتوب- عقلمندی-

پرسش:(پُر-سش)اسم- واحد- مذکر- پښتنه- تپوس- (م- فارسی)-

پرسند :(پَر-سند)اسم صفت- دَ پسند عاميانه قرأت- پسند- خوښه- (م- فارسی)-

پرسنده:(پر-سن-ده)اسم- واحد- مؤنث- وُچه کړې غوښه- دَ لاندی وُچه غوښه-

پرسنه:(پَرسَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- خاسنهٔ- خشنهٔ- خاشنهٔ- خراشنهٔ- (افغانستان)- جمع پرسنې-

پرسی:(پُر-سی)لاحقه- دَ "پرس" دَ کار او دَ مشغولا دَ معنې لرونکې لاحقه لکه بيمار پرسی وغيره-

پرسېره:(پر-سې-ره)حرف- برخېره- (۱)علاوه- (۲)زياتی- (۳)پورته-

پرش:(پَرش)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ فرش عاميانه قرأت- دَ سيمټو لېو شوې زمکه- (۲)دَ کوټې دَ مخ اسباب- ټغر- غالې- سترنجی- پوزے وغيره- (افغانستان)-

پرش:(پړش)اسم صوت- (۱)دَ غصې يا منډې پهٔ وجه دَ ښناورو پهٔ پوزه ساه راکښنه- پرشهار- پرشار- (۲)انتروشے- پرنجے- انځوشے- نړے- (۳)دَ مار پرشېدنه- (۴)ناڅاپه قهرېدنه-

پرش:(پړش)اسم- واحد- مذکر- وټه- پانګه- پُشته- شنډی- بند- پکه- دَ سيلاب دَ اُبو دَ ودرولو يا دَ مخې دَ رُخ اړولو دَ پاره لهٔ کاڼو جوړ مضبوط دېوال-

پرشا:(پرهٔ-شا)اسم صوت- پرشار- دَ پرش پرش اواز-

پرشاد:(پَر-شاد)اسم- واحد- مذکر- خېرات- دَ نذر نياز، تبرک، شکرانې يا لنګر خوړه (ورکول مصدر)- (م- هندی)-

پرش پرش:(پړش-پړش)اسم صوت- دَ ښناور يا مار دَ خلې اواز- خرش پرش-

پرش پروش:(پړش-پړوش)اسم صوت- (۱)پرشار- پرش پرش کونه- (۲)خرش خرش- دَ قهر او غصې پهٔ حالت کښې- (۳)ټره پره-

پرشکال:(پَر-ش-کال)اسم- وګورئ پشکال-

پرشمے:(پَر-ش-مے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېش نمے- جمع پرشمې-

پرشول:(پرهٔ-ش-وَل)مصدر- پرشار ايستل- پرشارے ايستل-

پرشه:(پر-شه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پربښه-

پرشهار :(پرهٔ-ش-هار)اسم صوت- (۱)پرشهارے- پرشېدنه- پرش پرش کونه- دَ ښناور يا دَ مار دَ خلې اوازونه- (۲)پهٔ زوره زوره ساه اخستنه-

پرشی:(پر-شی)اسم- واحد- مذکر- يو قسم مشهور ګل- جمع پرشيان-

پرشېدل:(پرهٔ-شې-دَل)مصدر لازم- پرنجېدل- پرچېدل- انتروشے کول- پرش پرش کول-

پرشېدن:(پرهٔ-شې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرشېدل-

پرشېدنګ:(پر-شې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرشېدل-

پرشېدنه:(پرهٔ-شې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرشېدل-

پرشېدونکے:(پرهٔ-شې-دَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرشېدونکی- مؤنث پرشېدونکې- وګورئ پرشېدل-

پرشېدهٔ:(پرهٔ-شې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پرشېدل-

پرشے:(پَر-شے)اسم- واحد- مذکر- دُرشل- څيرزېږے- تادرے- دَ دروازې دَ چوکاټ لاندينے لرګے-

پرښته:(پَ-ربن-ته)اسم- فربښته- (م- فارسی)-

پرښويه:(پَر-ښو-يه)اسم صفت- واحد- مؤنث- ښويه-

پرښه:(پَر-ښه)اسم- واحد- مؤنث- غټ کاڼے- تره- غټه تيږه- سنګه خونېدونکے غر-

پرغټ:(پر-غټ)اسم- واحد- مذکر- نرغوټ- برغوټ- پيش پرانګ- پيش- کټه پيش-

پرغړک:(پر-غَ-ړک)اسم- واحد- مذکر- ښه- داسه- ننګښے- کوښه- دَ بار دَ کلکولو او محکمولو دَ پاره دَ پړی پهٔ سر کښې تړلے شوے لرګے-

پرغز :(پَر-غَز)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو دَ لوبو هغه غشے چې وزر لری او ماشومان ئې دَ لوبو پهٔ غرض پهٔ دېوال وَلی- جګجکنے- جګجګانے-

پرغز :(پَر-غَز)اسم- واحد- مذکر- (۱)وارخطائی- بې هوشی- غټه- دَ مېرګی غټه- (۲)غصه- قهر- کاوړ- جمع پرغزونه-

پرغزتوب:(پَر-غَز-توب)اسم- دَ پرغزی کېدو حالت- پرغزتيا- وګورئ پرغز ۲-

پرغزتيا:(پَر-غَز-تيا)اسم- وګورئ پرغزتوب-

پرغزه:(پر-غَ-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پرغز-

پرغزی:(پَر-غَ-زی)اسم صفت- (۱)پرغز اخستے- (۲)دَ غصې حالت کښې- غصه ناک- قهرېدلے- کاوړ نيولے- (۳)ګډوړ- بې ترتيبه-

پرغشه:(پر-غَ-شه)اسم- واحد- مؤنث- بګه- بوه- لال- ګنده- جمع پرغشې-

پرغو:(پَر-غو)اسم- سری- پلغو- پولغو- پرويغی- دَ قُلبې دَ پاره غاړه شوی غويان-

پرک:(پَ-رک)اسم- واحد- مذکر- ټُلائی- خپل-

پرک:(پَ-رک)اسم- واحد- مذکر- هغه ګنجې کړے شوې کپړه چې دَ قميص لمن، لستونيو، دَ بالښت ابريو او داسې دَ نورو کپړو غاړو ته دَ ښائست دَ پاره لګی- فرل-

پرکار:(پَر-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)پلکار- پرکال- دَ يو پښې لرونکې دَ اُسپنې، لرګی يا پلاسټک هغه آله چې دائرې پرې راکښلے شی- هم دَ دې

غرض دَ پاره دَ ترکاڼانو یوه آله- څرخ- چکر- (۲)قطب نما- قبله نما-

پرکار:(پُر-کارْ)صفت- پرکاره- (۱)دَ "ساده" ضد- (۲)غټ- تکړه- (م- فارسی)-

پرکاره:(پُر-کا-ره)اسمِ صفت- وګورئ پُرکار-

پرکاری:(پُر-کا-ری)اسم- دَ "پُرکار" کېدو حالت- (م- فارسی)-

پرکال:(پر-کالْ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرکار ۱-

پرکال:(پُر-کالْ)اسمِ صفت- لهٔ خوبه جوته خوړونکے- خوب ته نژدې- پرېشانی وړے-

پرکالتوب:(پر-کالْ-توبْ)اسم- وګورئ پرکالتیا-

پرکالتیا:(پر-کالْ-تیا)اسم- دَ پرکال کېدو حالت- لهٔ خوبه دَ جوتو وهلو حالت-

پرکالول:(پر-کا-لَ-وَل)مصدر- دَ "پرکال" نه مصدر- دَ خوب پهٔ جوتو مبتلا کول-

پرکالون:(پُر-کا-لَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرکالول-

پرکالونګ:(پُر-کا-لَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرکالول-

پرکالونه:(پُر-کا-لَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرکالول-

پرکاله:(پر-کا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حصه- ټکړه- (۲)سکروټه- جمع پرکالې- (م- فارسی)-

پرکاله:(پر-کا-له)اسمِ صفت- دَ بَرنی "پرکال" مؤنث- لهٔ خوبه جوتې خوړونکې زنانه-

پرکالي:(پر-کا-لي)اسم- واحد- مؤنث- پرکالتیا- پرکالتوب-

پرکالېدل:(پر-کا-لې-دَل)مصدرِ لازم- دَ "پرکال" لازمی مصدر- دَ خوب پهٔ جوتو مبتلا کېدل-

پرکالېدن:(پر-کا-لې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرکالېدل-

پرکالېدنګ:(پُر-کا-لې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرکالېدل-

پرکالېدنه:(پر-کا-لې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرکالېدل-

پرکالېدونکے:(پر-کا-لې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرکالېدونکی- مؤنث پرکالېدونکې- وګورئ پرکالېدل-

پرکټ:(پر-کټْ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرکټے-

پرکټ:(پُر-کَټْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مات وزرے- هغه مارغهٔ چې وزرې ئې پربکړے شوې وی- (۲)مُتازه- بې کاره- بې وسه- حاجت مند (صفت)- جمع پرکټی- مؤنث پرکټه- جمع مؤنث پرکټې- (کول/کېدل مصدرونه)- (ش- هندی)-

پرکټے:(پر-کَ-ټے)اسم- واحد- مذکر- هغه څوځ چې کُنډه ښځه ئې دَ دويم وادهٔ نه پس دَ خاوند کور ته خان سره بوځی او ساتی- پرکټ- پرکټے- مترے (مروت)- جمع پرکټی- مؤنث پرکټې-

پرکټې:(پر-کَ-ټې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ "پرکټے" مؤنث- وګورئ پرکټے-

پرکش:(پر-کَش)اسمِ صفت- برکښه- هغه لینده چې دَ غشی ویشتلو دَ پاره ډېر پهٔ زور پوره راکښلے شی-

پرکن:(پر-کَن)اسم- واحد- مذکر- پوله- برید- دَ حد برجی-

پرکے:(پَر-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ قرآن پاڼه- جمع پرکی-

پرکے:(پر-کے)اسم صوت- دَ مارغانو آواز-

پرګ:(پَ-رګْ)اسم- واحد- مذکر- دَ بوزغلی پهٔ ځائ لهٔ تخمه حاصل شوی پیاز یا نور داسې بوټی- جمع پرګان-

پرګ:(پرګْ)اسم- واحد- مذکر- بُوس- هوا سره الوتونکے دَ څنو غلو پوستکے-

پرګ:(پرګْ)اسم- واحد- مذکر- رَمه- کنډک-

پرګانه:(پر-ګا-نه)اسم صفت- خوروور- تس نس- شیندلے- (افغانستان)-

پرګانی:(پَر-ګا-نی)اسم- واحد- مؤنث- دَ شولو هغه قسم چې دَ بوزغلی پهٔ ځائ لهٔ تُخمه زرغنیږی-

پرګټے:(پَر-ګَ-ټے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرکټے- جمع پرګټی- مؤنث پرګټې-

پرګله:(پر-ګَ-له)اسم- ډېر خلق- هجوم-

پرګنه:(پر-ګَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جاګیر- دَ ضلعې یوهٔ حصه- (تحصیل)- (۲)خاندان- کورمه- (افغانستان)- (ش- فارسی، هندی)-

پرګو:(پُر-ګو)اسمِ صفت- (۱)ډېر ډېر شعرونه ویونکے شاعر- دریابی شاعر- هوائی شاعر- (۲)زیاتې خبرې کونکے- پرګویه- (م- فارسی)-

پرګول:(پر-ګولْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پېغلتوب او عصمت پرده- دَ بکارت پرده- (۲)پېغله- بکره- نجلی- جینی-

پرګوئی:(پُر-ګو-ئی)اسم- مؤنث- دَ پُرګو کېدو حالت- وګورئ پُرګو-

پرګویه:(پُر-ګو-یه)اسم صفت- وګورئ پرګو-

پرګه:(پر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- خاندان- نسل- خېل- خپل خپلوان- کورمه- قبیله- جمع پرګې-

پرګے:(پَر-ګے)اسم- واحد- مذکر- دَ ښېری دَ ونې پلے- پېرګے- جمع پرګی-

پرګے:(پَر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- چرګے- برګے- (اس یا مېښه)-

پرل:(پَرل)مصدر- (۱)پېرل- (۲)بوږل-

پرلت:(پَر-لَت)اسم- واحد- مذکر- دَ ناستی هغه طریقه چې یوه پښه دَ بلې پښې دَ پاسه داسې واچولے شی چې دَ یوې پښې پنجه دَ بلی پښې پهٔ زنګانهٔ راشی- (غزول/وهل مصدر)-

پرن:(پَرن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرل-

پرنګ:(پرنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرل-

پرنه:(پرهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرل-

پرونکے:(پرون-کے)اسم فاعل- جمع پرونکی- مؤنث پرونکې- وګورئ پرل-

پرله باندې:(پر-له-بانْ-دې)جار/صفت/متعلق فعل- یو دَ پاسه بل- یو بل دَ پاسه- یو پهٔ بل- سر پهٔ سر- لاندې باندې-

پرله پسې:(پَر-لَ-پَ-سې)جار/صفت/متعلق فعل- یو بل پسې- یو پسې بل- پهٔ یو مخ- مسلسل- متواتر- لګاتار-

پرله پورې:(پَر-لَ-پو-رې)جار/صفت/متعلق فعل- جُخت- پیوست- نژدې نژدې- ورپورې-

پُرله وهلے:(پُر-له-وَ-هلے)اسم صفت- مضبوط- قوی- غټ- غښتلے- چاق- څرب- (افغانستان)-

پرلے:(پَرهٔ-لے)اسم مفعول- جمع پرلی- مؤنث پرلې- وګورئ پرل-

پرم:(پَ-رم)اسم- واحد- مذکر- پینځهٔ پاڼې لرونکے یو سدابهارګل چې عام طور سره سپین یا ګلابی وی- حکیمان ئې سپین ګل دَ ذیابیطس دَ پاره استعمالوی-

پرم:(پَ-رَم)اسم- واحد- مذکر- اتشک- بادفرنګ-

پرماتے:(پَر-ما-تے)اسم صفت- وزرماتے- دَ ادنیٰ قسم- جمع پرماتی-

پرمال:(پر-مال)اسم- واحد/جمع- مذکر- ګنډی مال- دَ غوبل شوو غنمو نه پاتې مات ګډ وړی چې دوباره غوبل کولے شی- سرمال- سرخ کوے- (افغانستان)-

پرمان:(پر-مان)اسم- واحد- مذکر- دَ "فرمان" عامیانه قرأت- حکم- فرمان- امر- جمع پرمانونه-

پرمانو:(پَر-ما-نو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرپانو- (م- هندی)-

پرمټ:(پَر-مټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)اجازت نامه- جمع پرمټونه- (۲)دَ بجلۍ دَ رو بندولو دَ پاره دَ متعلقه افسرانو اجازت- (م- انګریزی)-

پرمخ:(پر-مخ)اسم صفت- (۱)پهٔ مخ- پهٔ یوه مخه- سراسر- پهٔ مخ باندې- دَ شاټ ضد- (۲)وړاندې- مخکښې- (۳)بیخی- سراسر- له یو سر- ټول- (افغانستان)-

پرمختګ:(پَر-مخ-تګ/پرهٔ-مخ-تګ)اسم- پرمخ تیا- وړاندې تګ- ترقی- پیش رفت- (افغانستان)-

پرمخ توب:(پَر-مَخ-توب)اسم- وګورئ پرمختګ- (افغانستان)-

پرمختیا:(پَر-مَخ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پرمختګ- (افغانستان)-

پرمخیون:(پَر-مَخ-یون)اسم- پهٔ یو مخ رفتار- مسلسل رفتار- (افغانستان)-

پرمهره:(پَر-مَه-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه خیرے چې باز یا نور ښکاری مارغان ئې دَ سحر پهٔ وخت لهٔ خلې نه غرځوی- میل- (۲)دَ مارغانو بنې چې ښکاری مارغان ئې سحر کښې دَ یوې دانې پهٔ شکل کښې راوباسی-

پرمی:(پر-می)اسم- واحد- مذکر- دَ اتشک بیمار-

پرمیو:(پر-می-یو)اسم- (۱)دَ متیازو یو تکلیف- سوزاک- (۲)جیریان- جریان- (۲)څوځی- (م- فارسی)-

پرمیخ:(پَر-میخ)اسم صفت- واحد- مذکر- کنګس- پرکاله-

پرمېخې:(پَر-مې-خې)اسم- واحد- مؤنث- کنګس توب- پرکالی- دَ خوب دَ جوښې خوړلو حالت-

پرمېږه:(پَر-مې-ږه)اسم- واحد- مؤنث- پوځکی- مرخیړے- خرمېږې- ګوجے ګوجے- ورخېږے- ستورے- پرمېږه- جمع پرمېږې- (افغانستان)-

پرمېښې:(پر-مې-ښې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چاقه، څربه او تیاره غوا-

پرن:(پهٔ-رن)اسم صفت- تېزمار- تېزن-

پرنا:(پر-نا)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ دارو دَ یو خل خوراک مقدار- (۲)خل- وار-

پرنا:(پَر-نا)اسم- مؤنث- (۱)خمار- نشه- پرکالی- (۲- صفت)حیران-

پرناله:(پر-نا-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ کور لهٔ چته دَ اُبو دَ بهېدلو لاره- څخې- جمع پرنالې-

پرنا وړل:(پَر-نا-وَړل)مصدر- حیرانېدل-

پرناوه:(پَر-نا-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پرناله- جمع پرناوې-

پرنج:(پَرنج)اسم- واحد- مذکر- انتروشے- انځوشے- نړے- پرش- پرنځ- پرنچ-

پرنج:(پَ-رنج)اسم- واحد- مذکر- دوګانه- جالی- دَ انګورو قلم- دَ انګورو هغه لښته چې سر ئې پهٔ زمکه کښې ښخ کړے شی او دَ لګېدو نه پس جُدا کړے شی- جمع پرنجونه-

پرنجل:(پَرن-جل)مصدر- نړے کول- انتروشے کول- پرنجېدل-

پرنجول:(پَرن-ج-ول)مصدر- پرنځول- پرچول- نړے وروستل-

پرنجولے:(پَرن-ج-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرنجولی- مؤنث پرنجولې- وګورئ پرنجول-

پرنجون:(پَرن-ج-ون)حاصل مصدر- وګورئ پرنجول-

پرنجونکے:(پَرن-ج-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرنجونکی- مؤنث پرنجونکې- وګورئ پرنجول-

پرنجونګ:(پَرن-ج-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پرنجول-

پرنجونه:(پَرن-ج-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرنجول-

پرنجېدل:(پَرن-جې-دل)مصدر لازم- پرنجل- نړے راتلل- انځوشے اېستل-

پرنجېدن:(پَرن-جې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرنجېدل-

پرنجېدنګ:(پَرن-جې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرنجېدل-

پرنجېدنه:(پَرن-جې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرنجېدل-

پرنجېدونکے:(پَرن-جې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرنجېدونکی- مؤنث پرنجېدونکې- وګورئ پرنجېدل-

پرنجېدهٔ:(پَرن-جې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پرنجېدل-

پرنجے:(پَرن-جے)اسم- واحد- مذکر- انتروشے- انځوشے- نړے- پرنج- پرش- پرنځ- جمع پرنجی-

پرنځ:(پَرنځ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرنج-

پرنځر:(پَ-رن-ځر)اسم صفت- وګورئ پرېځر-

پرنځر:(پَ-رن-ځر)متعلق فعل- پهٔ څنګ- لاس پهٔ سر-

پرنځل:(پَرن-ځل)مصدر- وګورئ پرنجل-

پرنخول:(پِرن-خُ-وَل)مصدر- وګورئ پرنجول-

پرنخېدل:(پِرن-خې-دَل)مصدر لازم- وګورئ پرنجېدل-

پرنخې:(پِرن-خې)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرنجې-

پرنج:(پَرنج)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرنج-

پرند:(پَرند)اسم- واحد- مذکر- پریم- پېروان- لړمون- ګېرنې- جمع پرندونه-

پرند:(پ-رَند)اسم- واحد- مذکر- پړونې- څادر- ربښمینه کپړه- جمع پرندونه-

پرنډ:(پَرنډ)اسم صفت- (۱)پړم- پړن- (۲)اکنګل- منجمد-

پرنډتوب:(پَرنډ-توب)اسم- پرنډتیا- پرنډوالے- پوره کېدنه- تخه کېدنه-

پرنډتیا:(پَرنډ-تیا)اسم- وګورئ پرنډتوب-

پرنډوالے:(پَرنډ-وا-لے)اسم- وګورئ پرنډتوب-

پرنډول:(پِرن-ډ-وَل)مصدر- موره کول- تخه کول- منجمد کول-

پرنډون:(پِرن-ډ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پرنډول-

پرنډ ونډ:(پَرنډ-وَنډ)اسم- دَ زنانه اولاد تر منځه جائداد تقسیمونه (مقابله وکړئ پګ ونډ سره)-

پرنډونکے:(پِرن-ډ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرنډونکي- مؤنث پرنډونکې- وګورئ پرنډول-

پرنډونګ:(پِرن-ډ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرنډول-

پرنډونه:(پِرن-ډ-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرنډول-

پرنډیا:(پَرنډ-یا)اسم- وګورئ پرنډتوب-

پرنډېدل:(پِرن-ډې-دَل)مصدر لازم- (۱)موره کېدل- (۲)کلکېدل- منجمد کېدل-

پرنډېدن:(پِرن-ډې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ پرنډېدل-

پرنډېدنګ:(پِرن-ډې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرنډېدل-

پرنډېدنه:(پِرن-ډې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرنډېدل-

پرنډېدونکے:(پِرن-ډې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرنډېدونکي- مؤنث پرنډېدونکې- وګورئ پرنډېدل-

پرنډېدهٔ:(پَرن-ډې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پرنډېدل-

پرنړ:(پَ-رَنړ)اسم صفت- وګورئ پرنډ-

پرنې:(پر-نې)اسم- واحد- مؤنث- فېرنې- پېرنې- دَ چینو، پیو او یو خاص قسم سفوف نه جوړ اتوب- (افغانستان)-

پرنے:(پر-نے)اسم- واحد- مذکر- پورنے- یو خشاکي بوټے چې لهٔ زمکې نیم ګز قدري وچت وي-

پرو:(پَ-رو)اسم- واحد- مذکر- برو- بروو- ګرم باد- سخت او تند باد-

پرو:(پَ-رو)اسم صفت- فضول- خشکے- خشے- اواره- بېهوده- چټې- (افغانستان)-

پروا:(پَر-وا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فکر- لحاظ- خاطر- خیال- اند- (۲)ویره- باک (کول- لرل) مصدرونه- جمع پرواګانې- (م- فارسی)-

پروادار:(پَر-وا-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- پروا کونکے- پروا لرونکے- وګورئ پروا- (م- فارسی)-

پرواداري:(پَر-وا-دا-ري)اسم- دَ پروا دار کېدو حالت-

پرواز:(پَر-واز)اسم- واحد- مذکر- الوت- ورتنه- جمع پروازونه- (م- فارسی)-

پروان:(پَر-وان)اسم- واحد- مذکر- پېروان- پرند- ګرېنې-

پروانګي:(پَر-وان-ګي)اسم- واحد- مؤنث- اجازت- سند- سپارښت- هدایت- جمع پروانګۍ-

پروانه:(پَر-وا-نه)اسم- واحد- مؤنث- لیکلے اجازت- لیکلے حکم- شاهي فرمان-

پروانه:(پر-وا-نه)اسم- واحد- مذکر- (۱)اورپښت- اورپښتے- پتړ- پتنګ- (۲)مین-

پروپاګنډه:(پَرو-پا-ګن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پروپېګنډه- دَ تعریف یا غندنې پهٔ باره کښې زیات تبلیغ- دَ شهرت ورکولو عمل- (۲)دَ دروغو زباني یا تحریري مهم- (افغانستان)- (م- انګریزی)-

پروپاګنډچي:(پَرو-پا-ګنډ-چي)اسم صفت- واحد- مذکر- دروغژن- پروپېګنډه کونکے- پروپېګنډې- جمع پروپاګنډچیان-

پروپاګنډي:(پَرو-پا-ګن-ډي)اسم صفت- وګورئ پروپاګنډچي- جمع پروپاګنډیان- (افغانستان)-

پروپېګنډه:(پَرو-پې-ګن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پروپاګنډه- جمع پروپېګنډې- (م- انګریزی)-

پروپي:(پَ-رو-پي)اسم- واحد- مؤنث- دَ دولسو لپو پیمانه-

پروت:(پَ-روت)اسم صفت- (۱)لهٔ پرېوتل ځنې صفت- (۲)ایښوے شوے- (۳)پرېوتے- (۴)بې احتیاطه ګوزار کړلے شوے- (۵)پهٔ اراده یا بې ارادې پهٔ یوهٔ ځایٔ کښې محفوظ شوے- (۶)منتظر-

پروتوالے:(پَ-روت-وا-لے)اسم- (۱)دَ "پروت" کېدو حالت- (۲)پسور-

پروته:(پر-وَه-ته)اسم- واحد- مؤنث- پېروتې- پېرختونې- پېروته- پلچک- زېلانګه- پرېوتکې- جنګ بوټے- بجه- پسجه- سپرچه- یو بوټے چې ځنې قسمونه يې پهٔ تارونو یا نورو داسې څیزونو بره خیژي- نباتاتي نوم هېډرا هېلېکس (HEDERA HELLIX)-

پروړ:(پر-وَړ)اسم صفت- غټ کټ- څرب- طاقتور- مضبوط- قوي- (افغانستان)- جمع پروړونه- مؤنث پروړه- جمع مؤنث پروړې-

پروړ:(پَر-وَړ)اسم/صفت/متعلق فعل- دَ اس هغه رفتار چې اس پکښې وړومبی دوه او وروستي دوه پښې پهٔ وار وار یو ځایٔ وچتوي-

پروړ:(پروړ)اسم- واحد- مذکر- پرور- بوس-

پروړ توب:(پَر-وَړ-توب)اسم- زوروړتوب- پهٔ زور طاقت کښې کېدنه- چاغتوب- چاغوالے- (افغانستان)-

پروړ والے:(پر-وړ-وا-لے)اسم- وګورئ پروړ توب-

پروښے:(پ-رو-ښے)اسم- واحد- مذکر- د اوږو غلبېل- چڼونے- پروښے- چاڼ- چاڼونے- پرویجه- جمع پروښي-

پروخول:(پرو-خ-ول)مصدر- تاؤ ورکول- پېچ ورکول-

پروخولے:(پرو-خ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پروخولي- مؤنث پروخولې- وګورئ پروخول-

پروخون:(پرو-خ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پروخول-

پروخونکے:(پرو-خ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پروخونکي- مؤنث پروخونکې- وګورئ پروخول-

پروخونګ:(پرو-خ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پروخول-

پروخونه:(پرو-خ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پروخول-

پرودل:(پ-رو-دل)مصدر- ورکړے شوے څيز بيرته پۀ زور اخستل- تروړل-

پرودل:(پ-رو-دل)مصدر- پۀ بيعه اخستل- وګورئ پېرودل-

پرودلے:(پ-رو-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرودلي- مؤنث پرودلې- وګورئ پرودل-

پرودلے:(پ-رو-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرودلي- مؤنث پرودلې- وګورئ پرودل-

پرودن:(پ-رو-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرودل-

پرودن:(پ-رو-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرودل-

پرودنګ:(پ-رو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرودل-

پرودنګ:(پ-رو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرودل-

پرودنه:(پ-رو-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرودل-

پرودنه:(پ-رو-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرودل-

پرودونکے:(پ-رو-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرودونکي- مؤنث پرودونکې- وګورئ پرودل-

پرودونکے:(پ-رو-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرودونکي- مؤنث پرودونکې- وګورئ پرودل-

پرور:(پر-ور)لاحقه- د "پالونکے" پۀ معنیٰ اکثرو ترکيبونو کښې راځي لکه "بنده پرور"، "ادب پرور" وغيره- (م- فارسی)-

پرور:(پ-رور)اسم- واحد- مذکر- پرهر- پرار- زخم-

پرورتلل:(پر-ور-تلل)مصدر ترکيبي- برید کول- مخکښې کول- وړاندې کول- څوک تنګول- پلنول- عرض کول- (افغانستان)-

پروردګار:(پر-ور-د-ګار)اسم صفت- پالونکے- خدائ پاک- (م- فارسی)-

پرورده:(پر-ور-ده)اسم مفعول- پاللے- پاللے شوے- (م- فارسی)-

پرورش:(پر-و-رش)اسم- واحد- مذکر- (۱)پالنه- روزنه- سمبالښت- خصمانه- (۲)تربيت ورکونه- د ژوند د لارو چارو لار ښودنه- (م- فارسی)-

پرورل:(پر-و-رل)مصدر- پالل- پرورش ورکول-

پرورلے:(پر-و-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرورلي- مؤنث پرورلې- وګورئ پرورل-

پرورن:(پر-و-رن)حاصل مصدر- وګورئ پرورل-

پرورنګ:(پر-و-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرورل-

پرورنه:(پر-و-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرورل-

پرورونکے:(پر-و-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرورونکي- مؤنث پرورونکې- وګورئ پرورل-

پروړ:(پروړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پروړه-

پروړل:(پرو-ړل)مصدر متعدی- تروړل- پۀ موټيو را جدا کول- شوکول-

پروړن:(پرو-ړن)حاصل مصدر- وګورئ پروړل-

پروړنګ:(پرو-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ پروړل-

پروړنه:(پرو-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پروړل-

پروړونکے:(پرو-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پروړونکي- مؤنث پروړونکې- وګورئ پروړل-

پروړه:(پرو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پلاله- د غوبل شويو شولو بوس- دروښنه- پروړ- پروټ- جمع پروړې-

پروزی:(پ-رو-زی)اسم صفت- (۱)د شين رنګ يو قسم- د فيروزی رنګ- (۲)فيروزی رنګ لرونکے-

پروژه:(پرو-ژه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پروګرام- نقشه- پروجکټ- پروجيکټ- (۲)نيت- قصد- (افغانستان)-

پروس:(پروس)د "پروسر" مخفف-

پروستڼ:(پ-روس-تڼ)اسم صفت- پروسړن- د تېر کال- د پروسر کال- پروسړنے- پروسکلن- پروسکلنے- پروسکنے- پرهوسړنے-

پروسر:(پ-روسر)اسم صفت- د "پروسر کال" مخفف-

پروسر کال:(پ-روسر-کال)اسم صفت- تېر کال- هغه کال چې د سږ کال نه مخکښې او لۀ "مخې کال" نه وروستو وی-

پروسړن:(پ-روس-ړن)اسم صفت- وګورئ پروستڼ-

پروسړنے:(پ-روس-ړ-نے)اسم صفت- د تېر کال- جمع پروسړني- مؤنث پروسړنې-

پروسکال:(پ-روس-کال)اسم صفت- وګورئ پروسر کال-

پروسکلن:(پ-روس-ک-لن)اسم صفت- وګورئ پروستڼ-

پروسکلنے:(پ-روس-ک-ل-نے)اسم صفت- وګورئ پروستڼ- جمع پروسکلني- مؤنث پروسکلنې-

پروسکنے:(پ-روس-ک-نے)اسم صفت- وګورئ پروستڼ-

پروسه:(پرو-سه)اسم- واحد- مؤنث- مرحله- پروس- عمل- (افغانستان)- (م- انګريزی)-

پروفېسر:(پرو-فې-سر)اسم- واحد- مذکر- د کالج استاد- پوهاند- (افغانستان)- (م- انګريزی)-

پروګرام:(پ-روګ-رام)اسم- واحد- مذکر- (۱)لائحه- دَ څهٔ کار کولو طريقه- ترتيب- بندوبست- تقريب- پلوګرام- پروګرام- (عاميانه)- (۲)تعليمي او درسي نصاب- (افغانستان)- (م- انګريزي)-

پرول:(پ-ر-وَل)مصدر متعدی- (۱)زغلول- منډه ورکول- (۲)پارول- (۳)تيښتول- (۴)خوځول- (۵)حرکت ورکول- (۲)پهٔ تاؤ لري غرځول-

پرولل:(پَرو-لَل)مصدر- خرڅول- پلورل-

پروللے:(پَرو-لهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پروللی- مؤنث پروللې- وګورئ پرولل-

پرولنه:(پَرو-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرولل-

پرولول:(پَرو-ل-وَل)مصدر متعدی- پرولل- خرڅول-

پرولون:(پَرو-ل-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پرولول-

پرولونکے:(پَرو-لَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرولونکی- مؤنث پرولونکې- وګورئ پرولل-

پرولونکے:(پرو-ل-وون-کے)اسم فاعل- وګورئ پرولول-

پرولونګ:(پَرو-ل-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرولول-

پرولونه:(پَرو-ل-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرولول-

پرولے:(پ-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرولی- مؤنث پرولې- وګورئ پرول-

پرون:(پ-رُون)صفت/متعلق فعل- تېره ورځ- دَ شپې دَ پاره دَ صفت پهٔ طور راځي- لکه پرون شپه-

پرونکے:(پ-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرونکی- مؤنث پرونکې- وګورئ پرول-

پرونه:(پ-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرول-

پرونے:(پ-رو-نے)اسم صفت- پرون سره متعلق- جمع پروني- مؤنث پرونۍ-

پرونړ:(پ-رونړ)اسم- واحد- مذکر- دَ اوښ دَ کټې لاندې کدېلا- جمع پرونړه-

پرووَل:(پَرو-وَل)مصدر- خرڅول- لړ لړ خرڅول- پهٔ پرچون خرڅول-

پرووَن:(پَرو-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پرووَل-

پرוونکے:(پَرو-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرוونکی- مؤنث پرוונکې- وګورئ پرووَل-

پرוونګ:(پَرو-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرووَل-

پرוونه:(پَرو-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرووَل-

پروی:(پروی)اسم- واحد- مذکر- پاړو- پاړوګر- مداری-

پرويشين:(پر-وی-شين)اسم- واحد- مذکر- امېل- امېل-

پروين:(پَر-وين)مذکر- پيرونه- پيرونې- دَ اُوو ستورو جومبک چې لهٔ مغو سره نژدې دَ تلې ستوری هم وی- اُووهٔ خوېندې- (م- فارسی)-

پره:(پ-ره)اسم صفت- تښتولے- شکست ورکړے- فرار کړے- (کول مصدر)-

پره:(پ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ترازه- ټنګری- تړوټه- تړوکره- (۲)غانښے- دَ غرهٔ څوکه- څرخ- (۳)پلو- طرف- مخه- (۴)پله- (۵)طرفداری- ننګه- جنګ جګړه- دَ خفګان ښکاره کونه- نوغی ورسونه- (۲)دَ يوم څنډه- (۷)تلاش- (۸)ګروه- پله (دَ ښکار)-

پره بندی:(پ-ره-بَن-دی)اسم (مرکب)- (۱)صف بندی- قطار او څپ جوړونه- (۲)پله بندی- پله بازی- ګروپ بندی-

پره جنبه:(پ-ره-جم-به)اسم- طرفداری- پله بازی- حمايت-

پره دار:(پ-ره-دار)اسم صفت- پره کونکے- مل- ملګرے- طرفدار- حمايتي- جمع پره داران-

پره داری:(پ-ره-دا-ری)اسم- دَ پره دار کېدو حالت- وګورئ پره دار-

پره مے:(پ-ره-مے)اسم- واحد- مذکر- جبل- دَ اُسپنې کلک او مضبوط سيخ چې دَ خښتو، کاڼو دَ وکبنلو او دَ سختې زمکې دَ کنستلو دَ پاره پکاريږی-

پرمار:(پَر-مار)اسم- واحد- مذکر- زخم- پرهر- پرار- پياوړ- جمع پرمارونه-

پرمار:(پ-ر-مار)اسم صوت- دَ الوتو پهٔ وخت دَ مرغانو دَ وزرونو اواز- پرپر-

پرمارپاڼه:(پَر-مار-پا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- پرارپاڼه- دَ بارتنګ پاڼه- کزګ پاڼه- جمع پرمارپاڼې- (افغانستان)-

پرهېزګاری:(پَر-هېز-ګا-ری)اسم- نېکی- تقویٰ- عبادت- پرېزګاری- لهٔ بدو او ناکاره کارونو نه ډډه او پرهېز-

پرهېزی:(پَر-هې-زی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پرهېز سره متعلق- (۲)پرهېز کونکے-

پری پېکر:(پ-ری-پې-کر)اسم صفت- پری رو- پريوار- پری وش- دَ ښاپېری پهٔ شان شکل لرونکے- (م- فارسی)-

پری څېره:(پ-ری-څې-ره)اسم صفت- دَ پری پهٔ شان څېره لرونکې- دَ ښاپېری پهٔ شان څېره لرونکې- ښائسته-

پری ذات:(پ-ری-ذات)اسم صفت- وګورئ پری زاد- (م- فارسی)-

پری زاد:(پ-ری-زاد)اسم صفت- پری ذات- دَ پری نه پېدا- دَ پری اولاد- (م- فارسی)-

پری زادګی:(پ-ری-زاد-ګی)اسم صفت- (۱)دَ پری لور- (۲)ډېره ښائسته جينۍ- (م- فارسی)-

پری وار:(پ-ری-وار)اسم صفت- وګورئ پری پېکر- (م- فارسی)-

پری وش:(پ-ری-وش)اسم صفت- وګورئ پری پېکر- (م- فارسی)-

پرياب:(پر-ياب)اسم- واحد- مذکر- فرېب- دهوکه- دوکه- (م- فرېب)-

پريادل:(پر-يا-دَل)مصدر- وهل- ټکول-

پريادلے:(پر-يا-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پريادلی- مؤنث پريادلې- وګورئ پريادل-

پريادن:(پر-يا-دَن)حاصل مصدر- وګورئ پريادل-

پريادنګ:(پر-يا-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پريادل-

پريادنه:(پر-يا-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پريادل-

پرېادونکے:(پر-یا-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېادونکي- مؤنث پرېادونکې- وګورئ پرېادل-

پرېال:(پر-یال)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم خېمه- یو قسم کېږدۍ- (۲)هغه احاطه شوے ځاې چې کوچیان پکښې وسېږي- (۳)پرده- پېلیار- پاریال- هغه پرده چې یوه کوټه په دوو برخو وېشي- (افغانستان)-

پرېستل:(پرېس-تل)مصدر- وګورئ پرې اېستل-

پرېم:(پرېم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرېند-

پرېن:(پرېن)اسم- واحد- مذکر- (۱)د نس پرده- د خېټې پرده- پرېنګ- پرېند- (۲)د ماشومانو یو قسم لوبه-

پرېنځل:(پرېن-ځل)مصدر- وینځل- ولل- پرېمځل- پاکول- مینځل- پرېولل- (عامیانه)-

پرېنځن:(پرېن-ځن)حاصل مصدر- وګورئ پرېنځل-

پرېنځنګ:(پرېن-ځنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرېنځل-

پرېنځنه:(پرېن-ځه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرېنځل-

پرېنځونکے:(پرېن-ځون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېنځونکي- مؤنث پرېنځونکې- وګورئ پرېنځل-

پرېند:(پرېند)اسم- واحد- مذکر- پرېم- پرېنګه- ګېړنۍ- پرنو- پرېن- د ګېډې پرده- د ګېډې پرېم-

پرېنو:(پرېنو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرېند-

پرېنور:(پرې-ن-ور)اسم صفت- پرېن لرونکے- ګېډور-

پرېڼ:(پرېڼ)اسم- واحد- مذکر- بند- پېوند- جوړښت- ترتیب- بندوبست- تنظیم- سررشته- (افغانستان)-

پرېنے:(پرې-نے)اسم- واحد- مذکر- پرېن سره متعلق- وګورئ پرېڼ-

پرېو:(پر-یو)اسم- واحد- مذکر- مرید- پېرو- پرېوے- طابع- جمع پرېوان- (م- فارسي پېرو)-

پرېوے:(پر-یه-وے)اسم- وګورئ پرېو-

پرې:(پرې)حرف- (۱)پر د پاسه- باندې- ورباندې- (۲)ذریعه- واسطه-

پرې:(پ-رې)اسم صفت- د "پرېکېدل" مصدر نه اسم صفت- پرېکړے شوے- قطع- غڅ-

پرې:(پ-رې)حرف- یوه سابقه چې د څنو مصدرونو لکه "پرېوتل"، "پرېښول"، "پرېوینځل" وغیره کښې استعمالیږي-

پرې اېستل:(پرې-اېس-تل)مصدر- پرېستل- پرېباسل- غرځول- ځملول- پرځول- راغرځول-

پرې اېستے:(پرې-اېس-تے)اسم صفت- د "پرې اېستل" مصدر نه اسم صفت- وګورئ پرې اېستل-

پرې اېښکه:(پرې-اېښ-که)اسم- واحد- مؤنث- طلاقه شوې ښځه- پرې اېښې ښځه- پرېښکه- پرېښوې-

پرې اېښے:(پرې-اې-ښے)اسم صفت- پرېښوے شوے-

پرېباسل:(پرې-با-سل)مصدر- د "پرېوتل" متعدي شکل- پرځول- ارتاوول- نسکورول- ترېل- ښکته ګوزارول- لاندې اچول-

پرېباسلې:(پرې-با-سه-لې)اسم مفعول- مؤنث- جمع پرېباسلې- وګورئ پرېباسل-

پرېباسلے:(پرې-با-سه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېباسلي- مؤنث پرېباسلې- وګورئ پرېباسل-

پرېباسنه:(پرې-با-سه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرېباسل-

پرېباسونکے:(پرې-با-سون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېباسونکي- مؤنث پرېباسونکې- وګورئ پرېباسل-

پرېبدل:(پرېب-دل)مصدر- وهل- ټکول- ډبول- پرېبل- پرېادل-

پرېبدلے:(پرېب-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېبدلي- مؤنث پرېبدلې- وګورئ پرېبدل-

پرېبدن:(پرېب-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرېبدل-

پرېبدنګ:(پرېب-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرېبدل-

پرېبدنه:(پرېب-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرېبدل-

پرېبدونکے:(پرېب-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېبدونکي- مؤنث پرېبدونکې- وګورئ پرېبدل-

پرېبده:(پرېب-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پرېبدل-

پرېبل:(پرې-بل)مصدر- وګورئ پرېبدل-

پرېبلے:(پرې-به-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېبلي- مؤنث پرېبلې- وګورئ پرېبل-

پرېبن:(پرې-بن)حاصل مصدر- وګورئ پرېبل-

پرېبنګ:(پرې-بنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرېبل-

پرېبنه:(پرې-به-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرېبل-

پرېبونکے:(پرې-بون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېبونکي- مؤنث پرېبونکې- وګورئ پرېبل-

پرېټ:(پ-رېټ)اسم- واحد- مذکر- د "پرېټ" عامیانه قرأت- فوځي ورزش- جسماني تربیت- فوځي مظاهره- (۲)پلېټ- ارته جامه کښې د برابرولو د پاره سکښتې ګنجې- (۳)د سر وېښته په یو خاص انداز جوړونه- (م- انګریزي)-

پرېچ:(پرېچ)اسم- واحد- مذکر- پرچ- د چایو د پیالې لاندې وړوکې رکېبۍ- نالبکۍ- بشقاب- پشقاب- د پیالې غاب- جمع پرېچونه- (افغانستان)-

پرېخر:(پ-رې-خر)اسم صفت- پرنخر- پرخر- یوې خوا ته- یوې پړې ته- په څنګ- لاس په سر- وېزار-

پرېدار:(پرې-دار)اسم صفت- پېره دار- څوکیدار- څارونکے- پېردار- پېره دار- ساتونکے- جمع پرېداران- (افغانستان)-

پرېدار :(پَ-رې-دار)اسم صفت- واحد/جمع- مذكر- پُرې لرونكے- مؤنث پرېداره- جمع مؤنث پرېدارې-

پرېدارى:(پَرې-دا-رى)اسم- څوكيدارى- پېره دارى- څارنه- ساتنه- (افغانستان)-

پرېدل:(پَرې-دَل)مصدر- دَ "پربېړدل" عاميانه قرأت-

پرېدل:(پَ-رې-دَل)مصدر- دَ الوتونكو مرغو دَ وزرو اواز پورته كېدل-

پرېدل:(پَ-رې-دَل)مصدر- (۱)زغلېدل- پهٔ منډه كېدل- (۲)دَ څهٔ څيز پهٔ غلا تښتول كېدل-

پرېدلے:(پَ-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع پرېدلى- مؤنث پرېدلې- وګورئ پرېدل-

پرېدن:(پَ-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېدل-

پرېدنګ:(پَ-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېدل-

پرېدنه:(پَ-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېدل-

پرېدونكے:(پَ-رې-دُون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع پرېدونكى- مؤنث پرېدونكې- وګورئ پرېدل-

پرېدهٔ:(پَ-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پرېدل-

پربډ :(پَ-ربډ)اسم- واحد- مذكر- پربټ- فوځى ورزش- دَ فوځ جسمانى تربيت- فوځى مظاهره- جمع پرېډونه-

پربړ :(پَربړ)اسم صفت- پېړ- غټ- پنډ- څرب- چاغ- شلنډ- مزے-

پربړتوب:(پَ-ربړ-توب)اسم- پربړتيا- پربړوالے- غټوالے- پېړوالے-

پربړتيا :(پَ-ربړ-تيا)اسم- وګورئ پربړتوب-

پربړواله:(پَ-ربړ-وا-له)اسم- پنډواله- جُسامت- حجم- څربتيا- څربښت-

پربړوالے :(پَ-ربړ-وا-لے)اسم- وګورئ پربړتوب-

پربړول:(پَ-رې-ړ-وَل)مصدرِ متعدى- غټول- پېړول- پنډول- ضخامت زياتول- سختول- مزے كول-

پربړون:(پَ-رې-ړ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پربړول-

پربړونكے:(پَ-رې-ړ-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع پربړونكى- مؤنث پربړونكې- وګورئ پربړول-

پربړونګ:(پَ-رې-ړ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پربړول-

پربړونه:(پَ-رې-ړ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربړول-

پربړه:(پَ-رې-ړه)اسم صفت- پېړه- پنډه- غټه- جمع پربړې-

پربړه:(پَ-رې-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پرمېړه-

پربړېدل:(پَرې-ړې-دَل)مصدرِ لازم- پېړېدل- غټېدل- پنډېدل- زياتېدل- غښتلے كېدل- مضبوطېدل-

پربړېدن:(پَرې-ړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پربړېدل-

پربړېدنګ:(پَرې-ړې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پربړېدل-

پربړېدنه:(پَرې-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربړېدل-

پربړېدونكے:(پَرې-ړې-دُون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع پربړېدونكى- مؤنث پربړېدونكې- وګورئ پربړېدل-

پربړېدهٔ:(پَرې-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پربړېدل-

پربړى:(پَ-رې-ړى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تمبوله- كندو ړوله دَ غنمو يا نورې غلې دَ ساتلو دَ پاره دَ پوزى نه جوړ پنډېرے-

پربز :(پَ-ربز)اسم- واحد- مذكر- دَ دېوال سرماتے- چچه-

پربز :(پَ-ربز)اسم- واحد- مذكر- دَ پرمېز يو قرأت- وګورئ پرمېز-

پربز :(پَ-ربز)اسم- واحد- مذكر- پنكے- منجله- دَ زخم پټى-

پربزانه:(پَ-رې-زا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پرمېزانه يو قرأت- وګورئ پرمېزانه- جمع پربزانې-

پربزدانه:(پَ-ربز-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- صبردانه- پرمېزدانه-

پربړودل(پَربړو-دَل)مصدر- پربښول- پربښودل- خُشے كول- ايله كول- أزادول-

پربړه:(پَرې-ړه)اسم صفت- (۱)قحط وهلے- (۲- اسم)دَ غلې كمبوټ- قحطى- وچكالى- (افغانستان)-

پربستګ:(پَربَس-تګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پربستل-

پربستل:(پَربَس-تَل)مصدر- (۱)پرې يستل- پريستل- څملول- پرېباسل- راغُرزول- لاندې كول- (۲)اودهٔ كول-

پربستلے:(پَربَس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع پربستلى- مؤنث پربستلې- وګورئ پربستل-

پربستنه:(پَربَس-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربستل-

پربستونكے:(پَربَس-تُون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع پربستونكى- مؤنث پربستونكې- وګورئ پربستل-

پربستى:(پَربَس-تى)اسم- واحد- مؤنث- قے- څرخون- الټى- كوزكتنه-

پربسه:(پَرى-سه)اسم صفت- (۱)وېربدلے- ترمېدلے- ډاربدلے- ويربدلے- (۲)بېكاره او وزګاره ښځه-

پربش:(پَربش)اسم صفت- پرېشانى- (م- فارسى)-

پرېشان:(پَرې-شان)اسم صفت- (۱)خفه- غمګين- دلګير- ابتر- اوتر- سرګردان- بې چرته- (۲)غريب- خوار- كرياب- بې وزله- (۳)وېړ- تار پهٔ تار- ګډوډ- تيت پرک- خوروور- (۴)ګنګس- دَ خوب جوټو وهلے- پركاله- (م- فارسى)-

پرېشانول:(پَرې-شا-نَ-وَل)مصدرِ متعدى- خفه كول- زهيرول- دلګيرول- غمګينول- اوترول- مشوشول- ګډوډول- غمژن كول- فكرمند كول- (۲)ګنګسول- پركالول- (م- فارسى)-

پرېشانونكے:(پَرې-شا-نَ-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع پرېشانونكى- مؤنث پرېشانونكې- وګورئ پرېشانول-

پرېشانونه:(پَرې-شا-نَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېشانول-

پرېشانه:(پَرې-شا-نه)اسم صفت- وګورئ پرېشان-

پرېشاني:(پړي-شا-نې)اسمِ صفت- (۱)فکرمندي- سرگرداني- زهيري- زيږي- (۲)غريبي- ناچاري- محتاجي- مصيبت- (۳)کنکستيا- پرکالي-

پرېشانېدل:(پړي-شا-نې-دل)مصدر لازم- (۱)خفه کېدل- دلگير کېدل- زهيرېدل- (۲)خوړېدل- (۳)پرکالېدل-

پرېشانېدن:(پړي-شا-نې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېشانېدل-

پرېشانېدنګ:(پړي-شا-نې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېشانېدل-

پرېشانېدنه:(پړي-شا-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېشانېدل-

پرېشانېدونکے:(پړي-شا-نې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېشانېدونکي- مؤنث پرېشانېدونکې- وګورئ پرېشانېدل-

پرېشانېدهٔ:(پړي-شا-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پرېشانېدل-

پرېښتن:(پړېښ-تن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښتل-

پرېښته:(پ-رېښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- فرشته- پرښته-

پرېښکه:(پړي-ښ-که)اسم- واحد- مؤنث- طلاقه شوې ښځه- پرېښې ښځه- جمع پرېښکې-

پرېښل:(پړي-ښل)مصدر- پرېښول- (عاميانه)-

پرېښودل:(پړي-ښو-دل)مصدر- (۱)پرېښول- پرېږدل- (۲)خلاصول- خشے کول- ازادول- لاس ترې نه اخيستل- (۳)وروستو پاتې کول- شا ته پرېښول- (۴)طلاقول-

پرېښودلے:(پړي-ښو-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېښودلي- مؤنث پرېښودلې- وګورئ پرېښودل-

پرېښودن:(پړي-ښو-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښودل-

پرېښودنګ:(پړي-ښو-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښودل-

پرېښودنه:(پړي-ښو-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښودل-

پرېښودونکے:(پړي-ښو-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېښودونکي- مؤنث پرېښودونکې- وګورئ پرېښودل-

پرېښودونے:(پړي-ښو-دو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېښودوني- مؤنث پرېښودونې- وګورئ پرېښودل-

پرېښودهٔ:(پړي-ښو-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښودل-

پرېښول:(پړي-ښول)مصدر- وګورئ پرېښودل-

پرېښولے:(پړي-ښوهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېښولي- مؤنث پرېښولې- وګورئ پرېښول-

پرېښون:(پړي-ښون)اسم- دَ پرېښول مصدر نه اسم- (۱)خلاصون- خلاصے- نجات- (۲)جوړه- پاتې شوے-

پرېښون:(پړي-ښون)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښول-

پرېښونکے:(پړي-ښون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېښونکي- مؤنث پرېښونکې- وګورئ پرېښول-

پرېښونه:(پړي-ښوهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښول-

پرېښونے:(پړي-ښو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېښوني- مؤنث پرېښونې- وګورئ پرېښول-

پرېښوول:(پړي-ښو-ول)دَ پرېږدل، پرېښول، پرېښودل اصل قرأت- وګورئ پرېښول-

پرېښوولے:(پړي-ښو-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېښوولي- مؤنث پرېښوولې- وګورئ پرېښول-

پرېښوون:(پړي-ښو-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښوول-

پرېښوونکے:(پړي-ښو-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېښوونکي- مؤنث پرېښوونکې- وګورئ پرېښوول-

پرېښوونګ:(پړي-ښو-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښوول-

پرېښوونه:(پړي-ښو-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښوول-

پرېښوونے:(پړي-ښو-وو-نے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېښووني- مؤنث پرېښوونې- وګورئ پرېښوول-

پرېښووهٔ:(پړي-ښو-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېښوول-

پرېښوے:(پړېښ-وے)اسمِ صفت- وګورئ پرېښول-

پرېښے:(پړي-ښے)اسمِ صفت- مؤنث پرېښې- وګورئ پرېښول-

پرېکړل:(پړېک-ړل)مصدر- پرېکول- غوڅول- شوکول- کټ کول-

پرېکړون:(پړېک-ړون)اسم- دَ پرېکړل مصدر نه اسم- پرېکون- فېصله- پرېکړه- غوڅ- پرېکه- زباني اقرار- لنډون- (۲)دَ وادهٔ دَ مراسمو پرېکولو او دَ ورځې ټاکنه- جمع پرېکړونونه- (کول/کېدل مصدرونه)-

پرېکړه:(پړېک-ړه)اسم- وګورئ پرېکړون-

پرېکړين:(پړېک-ړين)اسم- واحد- مذکر- (۱)فاصله- (۲)پرېکړه- غوټ پرېکړې- ختمه-

پرېکړے:(پړي-کهٔ-ړے)اسمِ مفعول- (۱)دَ پرېکول مصدر نه اسمِ مفعول- شلولے- غوڅ شوے- (۲)فېصله شوے- ورکړے- (۳)بېل شوے- (۴)غوټ پرېکړے- واضح-

پرېکل:(پړي-کل)مصدر- پرېکول- غوڅول- کټکول- (دَ باجوړ مخصوصه لهجه)-

پرېکلے:(پړي-کهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پرېکلي- مؤنث پرېکلې- وګورئ پرېکل-

پرېکول:(پړي-ک-ول)مصدر- (۱)ځيرې کول- شلول- غوڅول- (۲)ادا کول (دَ قرض)- (۳)فېصله کول- ختمول- (۴)کنستل- کيندل-

پرېکون:(پړي-کون)اسم- واحد- مذکر- (۱)خبره خلاصونه- فېصله کونه- لنډون- پرېکړون- دَ ملک او جينئ دَ کورني لهٔ خوا دَ وادهٔ ورکولو او کېدلو فېصله- (۲)بېلتون- جدائي- بېلوالے- (۳)فېصله- پرېکړه- پرېکه- (۴)غوڅونه- (۵)مخالفت- اختلاف-

پرېکون:(پړي-ک-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پرېکول-

پرېکونکے:(پړي-ک-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پرېکونکي- مؤنث پرېکونکې- وګورئ پرېکول-

پربکونګ:(پرې-کُ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پربکول-
پربکونه:(پرې-کُ-وَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربکول-
پربکونے:(پرې-کُ-و-نے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هوښیار- حلیم-
پربکوڼ:(پرې-کوڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سربند- سرتړونے- (۲)بچوکے- (۳)انګړ- انګڼ- دَ کور او حوېلۍ غولے- (افغانستان)-
پربکوونے:(پرې-کُ-وو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پربکوونی- مؤنث پربکوونې- وګورئ پربکول-
پربکه:(پرې-که)حاصلِ مصدر- وګورئ پربکړون-
پربکېدل:(پرې-کې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)غُڅېدل- قطع کېدل- (۲)شلېدل- څیرلے کېدل- (۳)فېصله کېدل- ختمېدل- (۴)کنستل- کېندل-
پربکېدن:(پرې-کې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پربکېدل-
پربکېدنګ:(پرې-کې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پربکېدل-
پربکېدنه:(پرې-کې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربکېدل-
پربکېدونکے:(پرې-کې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پربکېدونکی- مؤنث پربکېدونکې- وګورئ پربکېدل-
پربکېدونے:(پرې-کې-دُو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پربکېدونی- مؤنث پربکېدونې- وګورئ پربکېدل-
پربم:(پربَم)اسم- واحد- مذکر- پرینګ- پرین- پرون- دَ ګېډې پرده- دَ نس پرده- برنخ- جمع پربمونه-
پربم:(پربَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)فربم- حلقه- چوکاټ- دُ چشمو فربم چې دَ مسالې او اُسپنې یا څهٔ بل څیز نه جوړ شوے وی- (۲)رغاونه- جمع پربمونه-
پربمان:(پرې-مان)اسمِ صفت- (۱)پربوان- بس بسیار- ډېر زیات- (۲)اباد- ښېرازه- (۳)دَ مور پهٔ ګېډه کښې لهٔ بچی چار چاپېره پرده- (م- فارسی)-
پربمانه:(پرې-ما-نه)اسمِ صفت- دَ پربمان مؤنث- (م- فارسی)-
پربمانی:(پرې-ما-نی)اسمِ صفت- (۱)سوکالی- ابادی- ښېرازی- (۲)ډېر والے- زیات والے- پربوانی- جمع پربمانی- (م- فارسی)-
پربمشت:(پرې-مُشت)اسم- وګورئ پربمشتل-
پربمشتل:(پرې-مُش-تَل)مصدر- دېره کېدل- پربملل- پړاؤ کول- مېشته کېدل- وُسېدل- تېکاوېدل-
پربمشتلے:(پرې-مُش-تهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پربمشتلی- مؤنث پربمشتلې- وګورئ پربمشتل-
پربمشتنه:(پرې-مُش-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربمشتل-
پربمل:(پرې-مَل)مصدر- قبضه کول- لاندې کول- لاس ته راوستل- (افغانستان)-
پربمل:(پرې-مَل)مصدر- پربمیشتل- مېشته کېدل- وُسېدل- ساکن کېدل-
پربملل:(پربم-لَل)مصدر- پربمېلل- پریمېشتل- وُسېدل- ورپربوتل- استوګه کول- پړاؤ کول- دېره کېدل- ډېره کېدل-

پربملے:(پرې-مهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پربملی- مؤنث پربملې- وګورئ پربمل-
پربمن:(پرې-مَن)اسمِ صفت- پهٔ مزه- پهٔ خوند- پهٔ اطمینان- پهٔ خوشی- پهٔ خوښه- پهٔ یخ زړهٔ-
پربمنه:(پرې-مهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربمل-
پربمنے:(پرې-مهٔ-نے)اسم- پروین- پیرونی- دَ تفصیلی معنې دَ پاره وګورئ پروین-
پربمیشتل:(پرې-میش-تَل)مصدر- وګورئ پربمشتل-
پربمینځل:(پرې-مین-ځَل)مصدر- وینځل- ولل- پاکول- مینځل- پرینځل- پهٔ اُبو اُچه کول-
پربمینځلے:(پرې-مین-ځهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پربمینځلی- مؤنث پربمینځلې- وګورئ پربمینځل-
پربمینځن:(پرې-مین-ځَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پربمینځل-
پربمینځونکے:(پرې-مین-ځُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پربمینځونکی- مؤنث پربمینځونکې- وګورئ پربمینځل-
پربمېلل:(پرې-مې-لَل)مصدر- پربملل- پربمیشتل- ورپربوتل- وُسېدل- استوګه کول-
پربواتهٔ:(پرې-وا-تهٔ)حاصلِ مصدر- دَ "پربوتل" مصدر نه حاصلِ مصدر- وګورئ پربوتل- (۲ اسم)مغرب-
پربوان:(پرې-وان)اسمِ صفت- پربمان- زیات- ډېر- فراوان-
پربوان:(پرې-وان)اسم- واحد- مذکر- پېروان- هغه کځوړه چې دَ مور پهٔ ګېډه کښې پکښې بچے نغښتے وی او وضع حمل نه پس هغه بهر راشی- جمع پربوانونه-
پربوانول:(پرې-وا-نَ-وَل)مصدر- ډېرول- زیاتول-
پربوانی:(پرې-وا-نی)اسم- پربمانی- فراوانی- ډېروالے- کثرت- (۲)ابادی-
پربوتکه:(پرې-وَت-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پروته- جمع پربوتکې-
پربوتل:(پرې-وَ-تَل)مصدر- (۱)غُرزېدل- سملاستل- (۲)غُزېدل- پرتاوېدل- راګوزارېدل- ارتاوېدل- لوېدل- نسکورېدل- (۳)پېنا کېدل- ډوبېدل- (۴)مېشته کېدل- ډېره کېدل- (۵)ناڅاپه حمله کول- یرغل کول- (۶)پانې توېېدل- رژېدل- (۷)ړنګېدل- نړېدل- (۸)پهٔ سوداګرۍ کښې تاوان، نقصان کېدل- (۹)ناکامېدل- پاتې کېدل- (۱۰)بیمارېدل- رنځورېدل- ناروغه کېدل-
پربوتلے:(پرې-وَ-تهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پربوتلی- مؤنث پربوتلې- وګورئ پربوتل-
پربوتن:(پرې-وَ-تَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پربوتل-
پربوتنګ:(پرې-وَ-تَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پربوتل-
پربوتنه:(پرې-وَ-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پربوتل-
پربوتونکے:(پرې-وَ-تُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پربوتونکی-

مؤنث پربوتونکې- وګورئ پربوتل-

پربوته:(پرې-وۀ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پروته- جمع پربوتې-

پربوتۀ:(پرې-و-تۀ)حاصل مصدر - وګورئ پربوتل-

پربوتې:(پرې-و-تې)اسم- جمع- مؤنث- پربوان- پېروان-

پربوتے:(پرې-وۀ-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ "پربوتل" مصدر نه اسمِ صفت- وګورئ پربوتل-

پربودل:(پرې-وۀ-دل)مصدر- وهل- ابېدل- ټکول-

پربودل:(پرې-وو-دل)مصدر- دَ "پربښول" عاميانه قرأت- دَ معنې دَ پاره وګورئ پربښول-

پربولل:(پرې-وۀ-لل)مصدر - وګورئ پربمينځل-

پربوللے:(پرې-وۀ-لۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پربوللي- مؤنث پربوللې- وګورئ پربولل-

پربولن:(پرې-وۀ-لن)حاصل مصدر - وګورئ پربولل-

پربولنګ:(پرې-وۀ-لنګ)حاصل مصدر - وګورئ پربولل-

پربولونکے:(پرې-وۀ-لون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پربولونکي- مؤنث پربولونکې- وګورئ پربولل-

پربولے:(پرې-وۀ-لے)اسم صفت- (۱)وينځلے- (۲)برباد-

پربونه:(پرې-وۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پروين- پيرونې- پيرووني-

پربوونې:(پرې-وو-نې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ پروين-

پربوينځل:(پرې-وين-ځل)مصدر- پربمينځل- ولل- وينځل- پاکول- پرينځل- پۀ ابو اُچه کول-

پربوينځلے:(پرې-وين-ځۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پربوينځلي- مؤنث پربوينځلې- وګورئ پربوينځل-

پربوينځن:(پرې-وين-ځن)حاصل مصدر - وګورئ پربوينځل-

پربوينځنګ:(پرې-وين-ځنګ)حاصل مصدر - وګورئ پربوينځل-

پربوينځنه:(پرې-وين-ځۀ-نه)حاصل مصدر - وګورئ پربوينځل-

پربوينځونکے:(پرې-وين-ځون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پربوينځونکي- مؤنث پربوينځونکې- وګورئ پربوينځل-

پربياستۀ:(پرې-ياس-تۀ)اسم- (۱)شملونه- اودۀ کونه- (۲)پرېباسنه- راکوزونه- (۳)ؤړدونه- غزونه- (۴)زوال-

پربيستل:(پرې-يس-تل)مصدر- (۱)پرېباسل- غزول- اودۀ کول- (۲)رابشکته کول- راغرځول- رااچول- پۀ زمکه شملول- (۳)دوړول- وړول-

پربيستلے:(پرې-يس-تۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پربيستلي- مؤنث پربيستلې- وګورئ پربيستل-

پربيستن:(پرې-يس-تن)حاصل مصدر - وګورئ پربيستل-

پربيستنګ:(پرې-يس-تنګ)حاصل مصدر - وګورئ پربيستل-

پربيستنه:(پرې-يس-تۀ-نه)حاصل مصدر - وګورئ پربيستل-

پربيستۀ:(پرې-يس-تۀ)حاصل مصدر - وګورئ پربيستل-

پربيښتل:(پرې-يښ-تل)مصدر - وګورئ پربيستل-

پربيښے:(پرې-يۀ-ښے)اسم مفعول- پربښولے- پربښودلے-

پربيوستل:(پرې-يوس-تل)مصدر- اړتاوول- ورګوزارول- غرځول-

پری:(پ-ری)اسم- واحد- مؤنث- ښاپېرۍ- ښاپسته جينۍ- ښکلې ښځه- (م- فارسي)-

پرئ:(پ-رئ)اسم- واحد- مؤنث- چتۍ- ټاپرۍ- درے- تاخچه- دَ لرګی نه جوړه يوه داسې خانه يا يو داسې محفوظ ځائ چې پۀ کوټه کښې دَ سامان کېښودو دَ پاره جوړ کړے شي-

پرے:(پۀ-رے)اسم- واحد- مذکر- پۀ غنو کښې پېدا کېدونکے چينجے- پرپرکے-

پړ:(پړ)اسم- واحد- مذکر- دَ خوړ يا سيند دَ پاسه دَ پوربوتلو راپوربوتلو لاره- (افغانستان)- جمع پړونه-

پړ:(پړ)اسم- واحد- مذکر- دَ جوارۍ ځائ- ټيکرے- (دَ جوارۍ دَ پاره)- جمع پړونه-

پړ:(پړ)اسم- حرج- کوړوالے- (اچول- راتلل مصدرونه)-

پړ:(پړ)اسم- واحد- مذکر- کاڼيزه زمکه- جمع پړونه-

پړ:(پړ)اسم صفت- (۱)ملامته- ګرم- (۲)مغلوب- دوړمند- (۳)بند- (افغانستان)- جمع پړۀ-

پړ:(پړ)اسم- واحد- مذکر- پټ- تهه-

پړاپه:(پړا-په)اسم- واحد- مؤنث- کورکوړه- کورکوړۍ- ببغه- ببوغه- کُرکړۍ- کرکوړۍ- کوړکوته- کټيميره- جمع پړاپې-

پړاته:(پ-ړا-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ "پړاتې" يو قرأت- وګورئ پړاته- جمع پړاتې- (افغانستان)-

پراخ:(پراخ)اسم صفت- فراخ- ارت- پلن- وسيع- پراخ- ارت بيرت- مؤنث پراخه- جمع مؤنث پراخې-

پراخ پزے:(پ-راخ-پۀ-زے)اسم صفت- مذکر- پلن پوزے- دَ پلنې پوزې خاوند- جمع پراخ پزی-

پراختوب:(پراخ-توب)اسم- (۱)پراختوب- پراخ والے- پراختيا- ارتوالے- فراختوب- پلنوالے- (۲)ډېروالے- زياتوالے-

پراختيا:(پراخ-تيا)اسم- وګورئ پراختوب- (افغانستان)-

پراخوالے:(پراخ-وا-لے)اسم- وګورئ پراختوب- (افغانستان)-

پراخول:(پرا-خ-ول)مصدر متعدی- (۱)فراخول- پراخول- ارتول- پلنول- وسعت ورکول- (۲)ډېرول- زياتول-

پراخولے:(پرا-خ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پراخولي- مؤنث پراخولې- وګورئ پراخول-

پراخون:(پرا-خ-ون)حاصل مصدر - وګورئ پراخول-

پراخونکے:(پرا-خ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پراخونکي- مؤنث پراخونکې- وګورئ پراخول-

پراخونګ:(پِرا-خُ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پراخول-

پراخونه:(پِرا-خُ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پراخول-

پراخه:(پِرا-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پوله پټے- جمع پراخې- (۲- صفت)دٔ پراخ مؤنث-

پراخي:(پِرا-خي)اسم- دٔ پراخ کېدو حالت- وګورئ پراخ-

پراخېدل:(پِرا-خې-دل)مصدر لازم- (۱)پراخېدل- فراخېدل- پلنېدل- (۲)ډېرېدل- زياتېدل-

پراخېدن:(پِرا-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پراخېدل-

پراخېدنګ:(پِرا-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پراخېدل-

پراخېدنه:(پِرا-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پراخېدل-

پراخېدونکے:(پِرا-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پراخېدونکي- مؤنث پراخېدونکې- وګورئ پراخېدل-

پراخېدهٔ:(پِرا-خې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ پراخېدل-

پرار:(پهٔ-رار)اسم صوت- پرمار- دٔ نښتې مرغۍ دٔ هلوخلو اواز- د وېرې پهٔ حالت کښې دٔ کبرې شوې مرغۍ دٔ وزرو اواز-

پراس:(پِراس)اسم صوت- (۱)کړس- ټک- پړک- (۲)پهٔ سخت ځاې دٔ څهٔ ځيز دٔ پرېوتو اواز- (۳- اسم)ځپېړه-

پړاق:(پ-راق)اسم صوت- دٔ چابک اواز- دٔ پړق اواز-

پراق:(پ-راق)اسم صفت- پراخ- ارت- پلن- پراخه-

پراق:(پِراق)اسم- واحد- مذکر- پرق- پتاخ- هغه ځرمن چې دٔ حجامت چاړهٔ پرې تېرولے شي-

پراکي:(پِرا-کي)اسم- ارت بيرت-

پراکے:(پِرا-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- قهرژن- بدخويه- غصه ناک- جنجالي- خشکي- تند مزاجه-

پړان پيش:(پ-ران-پيش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پران پيش-

پران پيش:(پران-پيش)اسم- واحد- مذکر- غټ ځنګلي پيش- کوترک- کټه پيش- کرپيش- پړان پيش- پښاپيش- پيشوپرانګ-

پرانګ:(پرانګ)اسم- واحد- مذکر- ټکي ټکي ځرمن لرونکے يو ځيرونکے ځنګلي ځناور- جمع پرانګان- مؤنث پرانګه- جمع مؤنث پرانګې--

پرانګ پيش:(پرانګ-پيش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پران پيش-

پرانګه:(پرانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ پرانګ مؤنث- وګورئ پرانګ-

پرانګه:(پرانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- چيرړه- چيرانګه- چيرړانګه- دٔ زړې کپړې چيرړه- پرانګه- ځيرانګه- جمع پرانګې-

پرانګه:(پرانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- کيله- کرښه- ليکه- جمع پرانګې-

پرانه:(پِرا-نه)اسم- واحد- مؤنث- پره- ملامتيا-

پرانه ورانه:(پِرا-نه-و-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- حق ناحق- ګرمه ناګرمه- پره وره-

پرانه ورانه:(پِرا-نه-و-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- جواري- قمار- شرط-

(افغانستان)-

پړاو:(پ-ړاو)اسم- واحد- مذکر- منزل- مقام- تېکانه- قيام ګاه- جمع پړاوونه- (اچول/کول مصدرونه)-

پرپر:(پر-پر)اسم صوت- (۱)پرپر- دٔ مرغو دٔ الوتو اواز- (۲)ترتر-

پړپړے:(پړ-پ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دست- پړپړه- پرت پرت- پرت- پرتهار- ترتار- جمع پړپړي-

پرپټه:(پر-پ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ زوره ژړېدنه او ځان غرځونه- (وهل/کول مصدرونه)- جمع پرپټې-

پرپنج:(پر-پنج)اسم- واحد- مذکر- پرپنجه- نهٔ ختمېدونکې جګړه- نهٔ حل کېدونکې تنازعه- جمع پرپنجونه-

پرپنجه:(پر-پن-جه)اسم- واحد- مؤنث- جمع پرپنجې- وګورئ پرپنج-

پرپوس:(پر-پوس)اسم- واحد- مذکر- (۱)پپوس- سړے- شش- (۲)بې کاره (سړے)- پرسېدلے (سړے)- (۲)بزدل- ويرېدوکے (سړے)- (۲ او ۳ معنو کښې صفت)-

پرت:(پرت)اسم صوت- لهٔ يو ځيز دٔ بل څهٔ ځيز نه دٔ ناڅاپه راوتلو اواز-

پرت:(پرت)اسم صفت- بهر راوتلے- مؤنث پرته-

پرت:(پرت)اسم- واحد- مؤنث- (۱)برستن- شړک- کنجړ- ټلتک- کنځړ- نالي- نيالي- کنجړ-

پرتاپرت:(پرهٔ-تا-پرت)اسم صوت- (۱)دٔ پرپړي اواز- (۲)دٔ دستونو اواز- (۳)دٔ څهٔ ځيز دٔ بل ځيز نه دٔ وتلو راوتلو اواز-

پرتال:(پر-تال)اسم- واحد- مذکر- پهٔ دوېم خل دٔ صحيح يا غلط معلومولو طريقه- چېکنګ- چېکن- (م- هندي پرتال)-

پړتاو:(پړ-تاو)اسم- کذار- ارتاو- اړتاو-

پړتاو:(پړ-تاو)اسم- فاصله- واټن- (م- غالباً فارسي پرتاب)-

پړتاوول:(پړ-تا-و-ول)مصدر متعدي- پرځول- راګوزارول- راغرځول- ارتاوول- اړتاوول-

پړتاوون:(پړ-تا-و-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړتاوول-

پړتاوونکے:(پړ-تا-و-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړتاوونکي- مؤنث پړتاوونکې- وګورئ پړتاوول-

پړتاوونګ:(پړ-تا-و-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړتاوول-

پړتاوونه:(پړ-تا-و-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړتاوول-

پړتاوېدل:(پړ-تا-وې-دل)مصدر لازم- کوزارېدل- غرځېدل- پرځېدل-

پړتاوېدن:(پړ-تا-وې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړتاوېدل-

پړتاوېدنګ:(پړ-تا-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړتاوېدل-

پړتاوېدنه:(پړ-تا-وې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړتاوېدل-

پړتاوېدونکے:(پړ-تا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړتاوېدونکي- مؤنث پړتاوېدونکې- وګورئ پړتاوېدل-

پړتاوېدهٔ:(پړ-تا-وې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ پړتاوېدل-

پرت پرت:(پرت-پرت)اسم صوت- پرت پروت- پرتېدنه- بې واره او بې جوړه خبرې- پرتاره- جلتې جلتې خبرې کونه- (۲)د دستونو په يو مخ اوازونه-

پرت پروت:(پرت-پروت)اسم صوت- وګورئ پرت پرت-

پرتکه:(پر-ت-که)اسم- واحد- مؤنث- لتې ټکونه- ترتکه- د حلالولو په وخت د ځناورو يا مرغانو وغېره لتې ټکونه-

پرتل:(پر-تل)اسم- واحد- مذکر- د نښتر يو قسم- نباتاتي نوم ابيېز پنډرو -(APIES PINDROW)

پرتوب:(پر-توب)اسم- پروالے- پرتيا- ملامتيا- ګرمتيا-

پرتوغاښ:(پر-تو-غاښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرتوغاښ-

پرتوګ:(پر-توګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرتوګ-

پرتول:(پرۀ-ت-ول)مصدر- (۱)شرتول- (۲)غوول- (۳)بېځايه کول- (۴)پرت پرت کول-

پرتون:(پرۀ-ت-ون)حاصل مصدر- وګورئ پرتول-

پرتونکے:(پرۀ-ت-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرتونکي- مؤنث پرتونکې- وګورئ پرتول-

پرتونګ:(پرۀ-ت-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پرتول-

پرتونه:(پرۀ-ت-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرتول-

پرته:(پر-ته)اسم- واحد- مؤنث- پرکه- لينډکۍ- لومه- دام- کيکرۍ- لټ- د مرغو نيولو اله- جمع پرتې-

پرتهار:(پرۀ-ت-هار)اسم صوت- وګورئ پرپرے-

پرتيا:(پر-تيا)اسم- وګورئ پرتوب-

پرتېدل:(پرۀ-تې-دل)مصدر لازم- (۱)پرتار کول- پټ پټې خبرې کول- (۲)شرتېدل- (۳)بې ځايه کېدل- (۴)غولے کېدل-

پرتېدن:(پرۀ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل-

پرتېدنګ:(پرۀ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل-

پرتېدنه:(پرۀ-تې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل-

پرتېدونکے:(پرۀ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرتېدونکي- مؤنث پرتېدونکې- وګورئ پرتېدل-

پرتېدۀ:(پرۀ-تې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ پرتېدل-

پرټنه:(پر-ټۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلټنه- (عاميانه)-

پرچ:(پرچ)اسم صوت- لۀ خلې څۀ مايع څيز په زور سره د ګوزارولو اواز- (وهل/کول مصدرونه)-

پرچ:(پرچ)اسم- واحد- مذکر- چوند- چوند- چوډ- شګاف- درز- جمع پرچونه-

پرچتې:(پر-چ-تې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- رپ- چنې- دپکۍ- په کوټه کښې د لوښو ايښولو د پاره په ديوال کښې لګولے شوې تخته يا د خټو نه جوړ شوې رپکۍ چې لوښي پرې ايښوے شي-

پرچول:(پرۀ-چ-ول)مصدر- د "پرچ" نه متعدي مصدر- چوند پيدا کول-

پرچولے:(پرۀ-چ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرچولي- مؤنث پرچولې- وګورئ پرچول-

پرچون:(پرۀ-چ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پرچول-

پرچونکے:(پرۀ-چ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرچونکي- مؤنث پرچونکې- وګورئ پرچول-

پرچونګ:(پرۀ-چ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پرچول-

پرچونه:(پرۀ-چ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرچول-

پرچهار:(پرۀ-چ-هار)اسم صوت- برچار- په برق برق او برچ برچ خندا- په زوره زوره خندا-

پرچېدل:(پرۀ-چې-دل)مصدر لازم- د "پرچ" نه لازم مصدر- چوند پيدا کېدل-

پرچېدل:(پرۀ-چې-دل)مصدر لازم- پرنجېدل- پرنجي کول- انتروشے کول- انبوشے کول-

پرچېدلے:(پرۀ-چې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرچېدلي- مؤنث پرچېدلې- وګورئ پرچېدل ۱-

پرچېدلے:(پرۀ-چې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پرچېدلي- مؤنث پرچېدلې- وګورئ پرچېدل ۲-

پرچېدن:(پرۀ-چې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل ۱-

پرچېدن:(پرۀ-چې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل ۲-

پرچېدنګ:(پرۀ-چې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل ۱-

پرچېدنګ:(پرۀ-چې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل ۲-

پرچېدنه:(پرۀ-چې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل ۱-

پرچېدنه:(پرۀ-چې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پرچېدل ۲-

پرچېدونکے:(پرۀ-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرچېدونکي- مؤنث پرچېدونکې- وګورئ پرچېدل ۱-

پرچېدونکے:(پرۀ-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پرچېدونکي- مؤنث پرچېدونکې- وګورئ پرچېدل ۲-

پرچېدۀ:(پرۀ-چې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ پرچېدل ۱-

پرچېدۀ:(پرۀ-چې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ پرچېدل ۲-

پرخ:(پرخ)اسم صوت- پرق- پرک- ټس- ټق- ټک- د ځپېړې اواز (کول/ورکول مصدرونه)-

پردوګ:(پر-دوګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پرتوګ-

پرده:(پر-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پرده- جمع پردې-

پرده:(پر-ده)اسم صفت- واحد- مؤنث- پر- ملامته- ګرم-

پرده پوښ:(پر-ده-پوښ)اسم صفت- پرده ساتونکے- پرده پوښ- عېب پټونکے- مؤنث پرده پوښه- جمع مؤنث پرده پوښې-

پرده پوښي:(پر-ده-پو-ښي)اسم- واحد- مؤنث- پرده پوشي- پرده پوشي-

پړده ساتنه-

پړده دار:(پړ-ده-دار)اسم صفت- وګورئ پړده دار-

پړده داری:(پړ-ده-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پړده داری-

پړس:(پړس)اسم صوت- پړخ- دَ ځپېړې اواز-

پړس:(پړس)اسم- واحد- مذکر- ځپېړه- ګوزار- پړن- جمع پړسونه-

پړس:(پړس)اسم- واحد- مذکر- دَ جوارو دَ دانو هغه قسم چې لوندې وی او سمې ورتېدے نهٔ شی-

پړس بن:(پړس-بن)اسم صفت- وګورئ پړس بنے-

پړسبنے:(پړس-ب-نے)اسم صفت- پړسېدلے- پړ شوے- پړسنړ- لهٔ باده ډک- جمع پړسبنی- مؤنث پړسبنی-

پړس پړوس:(پړس-پړوس)اسم صوت- دَ اتوب، لېټې، سرسر، پېټې يا وريژو دَ پخېدو او خوټکېدو اواز-

پړسپن:(پړس-پن)اسم صفت- خوړين- پوست- نرم- خوشت-

پړسپنول:(پړس-پ-ن-ول)مصدر متعدی- (۱)بوټول- پستول- خوړينول- نرمول- خوشتول- باری کول- لېټی کول- اچار اچول- يو څيز داسې پستول چې پړومبه شی لکه بړبړقی شی- (۲)ناراسته کول-

پړسپنولے:(پړس-پهٔ-ن-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړسپنولی- مؤنث پړسپنولې- وګورئ پړسپنول-

پړسپنون:(پړس-پهٔ-ن-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړسپنول-

پړسپنونکے:(پړس-پهٔ-ن-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړسپنونکی- مؤنث پړسپنونکې- وګورئ پړسپنول-

پړسپنونګ:(پړس-پهٔ-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړسپنول-

پړسپنونه:(پړس-پهٔ-ن-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړسپنول-

پړسمن:(پړس-من)اسم صفت- (۱)پړ- پړسېدلے- خوړين- پړوو- نرم- پوست- (۲)بې وجې- نابوده- (۲)الټ- ناراست- سوړ-

پړسنده:(پړ-سن-ده)اسم صفت- (۱)پړ- پړسېدلے- بوسه- پوسه- (۲)لهٔ غصې او قهره پړ- پهٔ غصه- پړسولے- (۲)تپس- پسن- تپوس- ورروست-

پړسو:(پړ-سو)اسم صفت- ادوبدو- ادوکدو- پړپړ- اوک پوک- پړسېدلے- دَ "غټ" دَ پاره دَ تحقير لفظ-

پړسوب:(پړ-سوب)اسم- وګورئ پاړسوب-

پړسوبن:(پړ-سو-بن)اسم صفت- کک شوے- پړسېدلے- پړ شوے- مؤنث پړسوبنه- جمع مؤنث پړسوبنې-

پړسول ۱:(پړ-س-ول)مصدر متعدی- (۱)پړول- لهٔ باده ډکول- (۲)غصه کول- قهرول- (۲)بلاربول- حامله کول- (۴)بنهٔ وهل تکول-

پړسول ۲:(پړه-س-ول)مصدر متعدی- پړقول- پړق ورکول- ځپېړه ورکول-

پړسولے:(پړ-س-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړسولی- مؤنث پړسولې- وګورئ پړسول ۱-

پړسولے:(پړه-س-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړسولی- مؤنث پړسولې- وګورئ پړسول ۲-

پړسومبه:(پړ-سوم-به)اسم صفت- پړسمن- پړ- بوکه- چې ډېر غټ وی خو دَ کار نهٔ وی- بې کاره- بې غېرته-

پړسون:(پړ-س-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړسول ۱-

پړسون:(پړه-س-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړسول ۲-

پړسونکے:(پړ-س-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړسونکی- مؤنث پړسونکې- وګورئ پړسول ۱-

پړسونکے:(پړه-س-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړسونکی- مؤنث پړسونکې- وګورئ پړسول ۲-

پړسونګ:(پړ-س-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړسول ۱-

پړسونګ:(پړه-س-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړسول ۲-

پړسونه:(پړ-س-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړسول ۱-

پړسونه:(پړه-س-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړسول ۲-

پړسېدل ۱:(پړ-سې-دل)مصدر لازم- (۱)دَ ګوزار يا زخم پهٔ نتيجه کښې دَ بدن دَ يو ځاۍ وچتېدل- پړېدل- تنډېدل- (۲)قهرېدل- غصه کېدل- (۲)حامله کېدل- (۴)دَ حېواناتو دَ کېډې يو مرض جوړېدل-

پړسېدل ۲:(پړه-سې-دل)مصدر لازم- (۱)وهلے کېدل- پړقېدل- پهٔ ځپېړه وهلے کېدل- (۲)چودل- (دَ نينو)-

پړسېدلے:(پړ-سې-دهٔ-لے) اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړسېدلی- مؤنث پړسېدلې- وګورئ پړسېدل ۱-

پړسېدلے:(پړه-سې-دهٔ-لے) اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړسېدلی- مؤنث پړسېدلې- وګورئ پړسېدل ۲-

پړسېدن:(پړ-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړسېدل ۱-

پړسېدن:(پړه-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړسېدل ۲-

پړسېدنګ:(پړ-سې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړسېدل ۱-

پړسېدنګ:(پړه-سې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړسېدل ۲-

پړسېدنه:(پړ-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړسېدل ۱-

پړسېدنه:(پړه-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړسېدل ۲-

پړسېدونکے:(پړ-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړسېدونکی- مؤنث پړسېدونکې- وګورئ پړسېدل ۱-

پړسېدونکے:(پړه-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړسېدونکی- مؤنث پړسېدونکې- وګورئ پړسېدل ۲-

پړسېدهٔ:(پړ-سې-دهٔ)حاصل مصدر از دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پړسېدل ۱-

پړسېدهٔ:(پړه-سې-دهٔ)حاصل مصدر از دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پړسېدل ۲-

پړشمبے:(پړ-شم-بے)اسم صفت- واحد- مذکر- بې مودې- نامينو- مړه پړومبه- هغه ماشوم چې دَ ژوندی پاتې کېدو ئې څهٔ اعتبار او اميد نهٔ

وی- مؤنث پړشمبه-

پړشمے:(پړ-ش-مے)اسم- واحد- مذکر- پېش نمے- پړشمي- پېش منے- چربانګے-

پړغشه:(پړ-غه-شه)اسم- واحد- مؤنث- د پرتوغاښ ګنډه- جمع پړغشې-

پړق:(پړق)اسم صوت- (۱)د خنو څیزونو د چودلو اواز-

پړق:(پړق)اسم- واحد- مذکر- څپېړه- پړخ- پړک- چپوته- جمع پړقونه-

پړق:(پړق)اسم- واحد- مذکر- (۱)بربښ- خلق- د رڼا ځریکه- (۲)لږ وخت-

پړقا:(پړه-قا)اسم- مؤنث- (۱)پړق پړوق- خلا- خلق- د رڼا ځریکه- بربښنا- (۲)د پړقونو اواز-

پړق پړوق:(پړق-پړوق)اسم- وګورئ پړقا-

پړقول ۱:(پړه-ق-ول)مصدر متعدی- (۱)خلقول- پړکول- بربښول- (۲)په لاسونو اواز ایستل- (۳)نیني ورتول- (۴)وزرې وهل- (۵)په پړق وهل-

پړقول:(پړ-ق-ول)مصدر متعدی- ناڅاپه مړکول-

پړقولے:(پړه-ق-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړقولی- مؤنث پړقولې- وګورئ پړقول ۱-

پړقولے:(پړ-ق-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړقولی- مؤنث پړقولې- وګورئ پړقول ۲-

پړقون:(پړه-ق-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۱-

پړقون:(پړ-ق-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۲-

پړقونکے:(پړه-ق-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړقونکی- مؤنث پړقونکې- وګورئ پړقول ۱-

پړقونکے:(پړ-ق-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړقونکی- مؤنث پړقونکې- وګورئ پړقول ۲-

پړقونګ:(پړه-ق-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۱-

پړقونګ:(پړ-ق-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۲-

پړقونه:(پړه-ق-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۱-

پړقونه:(پړ-ق-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۲-

پړقېدل ۱:(پړه-قې-دل)مصدر لازم- بربښېدل- خلقېدل- پړکېدل-

پړقېدل ۲:(پړ-قې-دل)مصدر لازم- ناڅاپه مړکېدل-

پړقېدل ۳:(پړ-قې-دل)مصدر لازم- پړکېدل- پړړېدل- د نښتې مرغی بې واره بې واره ټوپونه وهل-

پړقېدلے:(پړه-قې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړقېدلی- مؤنث پړقېدلې- وګورئ پړقېدل ۱-

پړقېدلے:(پړ-قې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړقېدلی- مؤنث پړقېدلې- وګورئ پړقېدل ۲-

پړقېدن:(پړه-قې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۱-

پړقېدن:(پړ-قې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۲-

پړقېدنګ:(پړه-قې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۱-

پړقېدنګ:(پړ-قې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۲-

پړقېدنه:(پړه-قې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۱-

پړقېدنه:(پړ-قې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۲-

پړقېدونکے:(پړه-قې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړقېدونکی- مؤنث پړقېدونکې- وګورئ پړقېدل ۱-

پړقېدونکے:(پړ-قې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړقېدونکی- مؤنث پړقېدونکې- وګورئ پړقېدل ۲-

پړقېده:(پړه-قې-ده)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۱-

پړقېده:(پړ-قې-ده)حاصل مصدر- وګورئ پړقېدل ۲-

پړک:(پړک)اسم- واحد- مذکر- تهه- خل- وار- کرت- پېره- جمع پړکونه-

پړک:(پړک)اسم- واحد- مذکر- پړکه- لپ- لومه- دام-

پړک:(پړک)اسم- واحد- مذکر- پټاخ- د نایانو د چړې تېرولو څرمن-

پړک:(پړک)اسم- واحد- مذکر- (۱)د خلقو ټولے چې لس شل تنه پکښې وی- (۲)د ګډو وړه رمه- (۳)وېره- اضطراب- رېږدېدنه- (۴)همځولتیا-

پړک:(پړک)اسم- واحد- مذکر- (۱)د تلې چاپېرے- (۲)حمایت- طرف- پره جنبه-

پړک:(پړک)اسم- واحد- مذکر- (۱)د مرغلرو لړ- د پېيلو مرغلرو لړ- (۲)د لمنځي لرګے- جمع پړکونه- (افغانستان)-

پړکا:(پړه-کا)اسم- مؤنث- پړقا- (۱)رڼا- خلا- خلق- د رڼا ځریکه- بربښنا- خلک- (۲)ټقا- ټکا- د څپېړو اواز- د تارو غږ-

پړک مشر:(پړک-مه-شر)اسم صفت- کمان دان- قوماندان- د شلو نه تر دېرشو پورې د فوځیانو افسر- (افغانستان)-

پړکول ۱:(پړه-ک-ول)مصدر متعدی- وګورئ پړقول ۱-

پړکول ۲:(پړ-ک-ول)مصدر متعدی- ناڅاپه مړکول- وګورئ پړقول ۲-

پړکولے:(پړه-ک-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړکولی- مؤنث پړکولې- وګورئ پړقولے ۱-

پړکولے:(پړ-ک-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړکولی- مؤنث پړکولې- وګورئ پړقولے ۲-

پړکون:(پړه-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۱-

پړکون:(پړ-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړکول ۲-

پړکونکے:(پړه-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړکونکی- مؤنث پړکونکې- وګورئ پړقول ۱-

پړکونکے:(پړ-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- جمع پړکونکی- مؤنث پړکونکې- وګورئ پړکول ۲-

پړکونګ:(پړه-ک-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۱-

پړکونګ:(پړ-ک-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړکول ۲-

پړکونه:(پړه-ک-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړقول ۱-

پړکونه:(پړ-ک-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړکول ۲-

پړکه:(پړ-که)اسم- واحد- مؤنث- پنډې- جمع پړکې-

پړکه:(پړ-که)اسم- واحد- مؤنث- لومه- دام- کورکې- پړکې- جمع پړکې-

پړکهار:(پړه-ک-هار)اسم صوت- د پړک اوازونه- ټسهار- تکهار- ترسهار-

پړکېدل ۱:(پړه-کې-دل)مصدر لازم- خلبدل- پړقېدل- خلفېدل- بربښېدل- خلقېدل-

پړکېدل ۲:(پړ-کې-دل)مصدر لازم- ناڅاپه مړکېدل- پړقېدل-

پړکېدل ۳:(پړ-کې-دل)مصدر لازم- رېبدل- رېږدېدل- لړزېدل- ترپېدل- پړپدل- پړکونه خوړل- پسخېدل-

پړکېدلے:(پړه-کې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړکېدلي- مؤنث پړکېدلې- وګورئ پړکېدل ۱-

پړکېدلے:(پړ-کې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړکېدلي- مؤنث پړکېدلې- وګورئ پړکېدل ۲-

پړکېدلے:(پړ-کې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړکېدلي- مؤنث پړکېدلې- وګورئ پړکېدل ۳-

پړکېدن:(پړه-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۱-

پړکېدن:(پړ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۲-

پړکېدن:(پړ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۳-

پړکېدنګ:(پړه-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۱-

پړکېدنګ:(پړ-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۲-

پړکېدنګ:(پړ-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۳-

پړکېدنه:(پړه-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۱-

پړکېدنه:(پړ-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۲-

پړکېدنه:(پړ-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۳-

پړکېدونکے:(پړه-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړکېدونکي- مؤنث پړکېدونکې- وګورئ پړکېدل ۱-

پړکېدونکے:(پړ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړکېدونکي- مؤنث پړکېدونکې- وګورئ پړکېدل ۲-

پړکېدونکے:(پړ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړکېدونکي- مؤنث پړکېدونکې- وګورئ پړکېدل ۳-

پړکېدۀ:(پړه-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۱-

پړکېدۀ:(پړ-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۲-

پړکېدۀ:(پړ-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ پړکېدل ۳-

پړکې:(پړ-کې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پړکه ۲-

پړکے:(پړ-کے)اسم- واحد- مذکر- اشتار- شخار- اشخار- يو بوټے- جمع پړکي-

پړکےتړ:(پړ-کے-تړ)اسم- واحد- مذکر- چاړې- لينګکتي- لتي- انډې- ړنګتي- لينګته- لنګتي- (افغانستان)- پائ تاوې- پنډې تړ- غړې-

پړم:(پړم)اسم صفت- پړين- پړن- خوړين پړين- ډېر خوړين-

پړمبې:(پړم-بې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د اُبو د سر پوکڼې- پومبکۍ- بړبوکۍ- پومبکۍ- بوړبوکۍ- حُباب- (۲)تناکه- پمبړې- پولۍ- کولبې-

پړمخ:(پړ-مخ)اسم صفت- نسکور- سر د لاندې- اپوټه- پړمخې-

پړمخې:(پړ-مۀ-خې)اسم صفت- وګورئ پړمخ-

پړمخے:(پړ-مه-خے)اسم- واحد- مذکر- برغولے- د کټوې سرپوښ- د کټوې خورين سر- جمع پړمخي-

پړمېخوا:(پړ-مې-خوا)اسم صفت- واحد- مذکر- پړمخې- پړمخ- اپوټه- نسکور-

پړن:(پ-ړن)اسم- واحد- مذکر- پړن- جاکے- موره- يخ- کرنګ-

پړند:(پړند)اسم صفت- لېوال- تيار-

پړند:(پړند)اسم صفت- سست- کاهل-

پړنګ:(پړنګ)اسم صفت- (۱)ټک- برګ- منانق- دوپريق- (۲- اسم)خوراړه- جذام- خراړه- د برص بيماري-

پړنګ:(پړنګ)متعلق فعل- بړينګ- بړنګ- پړينګ- د ژړا د پاره متعلق فعل- (افغانستان)-

پړنګ:(پړنګ)اسم- واحد- مذکر- پړانګ- جمع پړنګان-

پړنګا:(پړنګ-ګا)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژړا- پړنګ- بړنګ- (۲)ړنګا- چنګا- منګا- پنګا- جمع پړنګاړې-

پړنګن:(پړنګ-ګن)اسم صفت- ژړن- زړن- بړنګن- پړنګن- چنګن-

پړنګول:(پړنګ-ګ-ول)مصدر متعدي- ژړول- بړنګول-

پړنګولے:(پړنګ-ګ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړنګولي- مؤنث پړنګولې- وګورئ پړنګول-

پړنګون:(پړنګ-ګ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړنګول-

پړنګونکے:(پړنګ-ګ-ون-کے)اسم فاعل- وګورئ پړنګول-

پړنګونګ:(پړنګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړنګول-

پړنګونه:(پړنګ-ګ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړنګول-

پړنګېدل:(پړنګ-ګې-دل)مصدر لازم- (۱)ژړېدل- بړنګېدل-

پړنګېدلے:(پړنګ-ګې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړنګېدلي- مؤنث پړنګېدلې- وګورئ پړنګېدل-

پړنګېدن:(پړنګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړنګېدل-

پړنګېدنګ:(پړنګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړنګېدل-

پړنګېدنه:(پړنګ-ګې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړنګېدل-

پړنګېدونکے:(پړنګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړنګېدونکي- مؤنث پړنګېدونکې- وګورئ پړنګېدل-

پړنګېدۀ:(پړنګ-ګې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ پړنګېدل-

پړنګے:(پړنګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- د پړنګ مريض- جمع پړنګي-

پړنه:(پړۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- تور- تهمت- الزام- ملامتيا- پړه- جمع پړنې-

پړنه وړنه:(پړهٔ-نه-وړهٔ-نه)اسم صفت- پړه وړه- حق ناحق- ملامت و سلامت- ګرمه ناګرمه- پړانه وړانه- حق ناحقه- ګرمه ګرمي- جمع پړنې وړنې-

پړنی:(پ-ړ-ني)اسم- دَ خشاک دَ پاره استعمالېدونکے خنګلی بوټے-

پړو:(پ-ړو)اسم- واحد- مذکر- تسکوره- څڅکوره- کهی- دَ خاورو دَ کنستلو او دَ ختو جوړولو یوه آله- (م- منډی)-

پړوال:(پړ-وال)اسم- واحد- مذکر- دَ سترګو هغه وېښتهٔ چې دَ بڼو دَ لاندې پهٔ خېزمه راوځي-

پړوالے:(پړ-وا-لے)اسم- ملامتیا- ګرمتوب- دَ "پړ" اسم-

پړوپی:(پ-ړو-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ مېچ یوه پیمانه چې دَ اوړی شپاړسمه حصه وی-

پړوپے:(پ-ړو-پے)اسم- واحد- مذکر- پاؤ- چارک- څلورمه حصه- کوړولے- جمع پړوپی- (افغانستان)-

پړوده:(پړو-ده)اسم- واحد- مؤنث- اچوانی- لوئ دارو- لېټی- کاړی- کاړه- هغه خوراکه چې دَ ماشوم دَ زېږېدو نه پس مور ته ورکولے شي-

پړوړ:(پړ-وړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پړه وړه-

پړوستي:(پړوس-تي)اسم- جمع- مؤنث- (۱)غوړګي- پلي- (۲)پولي- دَ جوارو پولی- (افغانستان)-

پړوکې پړوکې:(پړو-کی-پړو-کی)اسم صفت- ټوټې ټوټې- ټوکړه ټوکړه- ذرې ذرې- جمع پړوکی پړوکی-

پړوکے:(پړو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټوټه- ټوکړه- (۲)تسمه- (۲)دَ رسی ټوټه- وړه بیاسته- دَ پړی ټوټه- جمع پړوکی-

پړوکے:(پړو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)مصرعه- دَ شعر حصه- ټوټه- (۲)ناره- نعره- غږ- (افغانستان)- جمع پړوکی-

پړوکے:(پ-ړو-کے)اسم تصغیر- وړوکے کنډک- وړه رمه- دَ "پړک" تصغیر- جمع پړوکی-

پړول:(پ-ړه-ول)مصدر متعدی- (۱)دمول- جادو کول- (۲)پوکے ورکول-

پړول:(پهٔ-ړه-ول)مصدر متعدی- (۱)ګرمول- ملامت کول- (۲)مغلوبول-

پړولے:(پ-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړولی- مؤنث پړولې- وګورئ پړول-

پړولے:(پهٔ-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړولی- مؤنث پړولې- وګورئ پړول-

پړومبه:(پړوم-به)اسم- واحد- مؤنث- خواره غوښه- چیچړه غوښه- ړنګره غوښه- جمع پړومبې-

پړومبې:(پړوم-بې)اسم- جمع- مؤنث- دَ پنیر یا مستو دَ پاسه اُبهٔ-

پړون:(پ-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړول-

پړون:(پهٔ-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پړول-

پړوند:(پړ-وند)اسم صفت- کلک- ټینګ- قوی- غښتلے- مضبوط-

پړونکے:(پ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړونکی- مؤنث پړونکې- وګورئ پړول-

پړونکے:(پهٔ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړونکی- مؤنث پړونکې- وګورئ پړول-

پړونګ:(پ-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړول-

پړونګ:(پهٔ-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پړول-

پړونه:(پ-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړول-

پړونه:(پهٔ-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړول-

پړونے:(پ-ړو-نے)اسم- واحد- مذکر- پوړنے- دَ زنانه څادر- پټکے- داوڼ- دانو- چکاله- ټیکرے-

پړوه:(پړ-وه)اسم- واحد- مؤنث- پوړه- کوی- دَ پلنې خلې وړه کوی- کهی- وګورئ پړو- جمع پړوې-

پړوهنه:(پړ-و-هڼهٔ-نه)اسم- جریب کشی- پهٔ پړی زمکه مېچ کونه- (م- شاید لهٔ "پړې وهنه" خنې جوړ شوے)-

پړوهونکے:(پړ-و-هون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- پړوهونے- جریب کش- دَ پړی پهٔ ذریعه دَ زمکې مېچ کونکے- (افغانستان)-

پړوهونے:(پړ-و-هو-نے)اسم فاعل- جمع پړوهوني- وګورئ پړوهونکے-

پړه:(پړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ "وړه" ضد- ملامتیا- ګرمتیا-

پړه:(پ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- استر- جمع پړې- (افغانستان)-

پړه تکه:(پړه-ت-که)اسم- واحد- مؤنث- تړتکه- پوڼاکه- پڼاکه- لتې وهنه- شتلکه- لتکه- لغته- لوڅې پوڅې- وګورئ پړتکه-

پړه وړه:(پړه-وړه)اسم- حق ناحق- ګرمه ناګرمه-

پړهٔ:(پړهٔ)اسم صفت- جمع- مذکر- دَ "پړ" جمع- (۱)ملامت- ګرم- (۲)شکست خوړلی- مات شوی-

پړی:(پ-ړی)اسم صفت- (۱)دَ پړ خاوند- جوارګر- شرطی- پړ چلونکے- (۲)هغه سړے چې هر کار کښې خنډ اچوی-

پړی والا:(پهٔ-ړی-وا-له)اسم- واحد- مذکر- (۱)پنډی- مزدور- هغه مزدور چې پهٔ شا پېټے وړی- (۲)رسی یا پړی خرڅونکے- جمع پړی والان-

پړیت:(پړیت)اسم صفت- (۱)چیت- پیت- (۲)لهٔ ویرې نه پټ شوے- غلے شوے- مؤنث پړیته- جمع مؤنث پړیتې-

پړیت:(پړیت)اسم صوت- دَ الوتو پهٔ وخت دَ مرغ اواز-

پړیت:(په-ړیت)لاحقه- شلېدلے- چودے (عام طور سره پهٔ کنځلو کښې دَ زنانه دَ شرمګاه سره دَ لاحقې پهٔ شکل راځي)-

پړیخ:(پړیخ)اسم صفت- (۱)پلن- چیت- پړیت- (۲)چینګ- جینګ- مؤنث پړیخه- جمع مؤنث پړیخې-

پړیخ پړزے:(پړیخ-پهٔ-زے)اسم صفت- واحد- مذکر- پړیخ پوزے- پلنه او چیته پوزه لرونکے- چیت پوزے- پیت پوزے- پړیخ پېزے- جمع پړیخ پړزی-

"ی" (څی-ړل)، "ې" (هې-ره-ول)، "ی" (پیا-لی)، "ے" (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پړيخ پېزے:(پړيخ-پې-زے)اسم صفت- وګورئ پړيخ پزے-

پړيس:(پړيس)اسم صفت- بې بوله- پلن- پړيخ-

پړيس والے:(پړيس-وا-لے)اسم- بدشکلی- بې بولې-

پړيک:(پړيک)اسم- واحد- مذکر- پړيکه- رڼا- خلق- بربښ- څريکه- جمع پړيکونه-

پړيم:(پړيم)اسم صفت- پريم- يخ- کلک- موره- پړنډ-

پړين:(پړين)اسم صفت- خوړين- زيات پوخ- خوړين پړين- خوړت پړت-

پړيند:(پړيند)اسم- واحد- مذکر- پريم- پړيند- پړيم- دَ نوم کلمه-

پړينګ:(پړينګ)اسم صوت- چينګ- پړنګ- دَ ژړا اواز-

پړينګ:(پړينګ)اسم- واحد- مذکر- پړبوان- هغه سپينه ماده چې دَ بچي دَ پېدا کېدو پهٔ وخت دَ ماده څاروی نه راوځي- (۲)دَ کُلمو دَ پاسه دَ غوښې يوه کلکه پرده-

پړينګاوی:(پړين-ګا-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چُغَت- چُغَته- کوکټے- دَ مرز نه لوړه غټه مرغۍ-

پړينګهار:(پړينګ-ګ-هار)اسم- چينګا- چينګهار- دَ ماشومانو دَ ژړا اواز-

پړينګے:(پړين-ګے)اسم- چيچړه- پړيق- ديپره- هغه غوښه چې څربه او سره نهٔ وی او ريپره شان وی-

پړېدل:(پ-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)دمېدل- سحر کېدل- دَ جادو لاندې راتلل- (۲)بېږدل- بې خايه او کهوړ غړېدل-

پړېدل:(پهٔ-ړې-دل)مصدر لازم- ملامتېدل- کرمېدل- مغلوبېدل- ماتې خوړل-

پړېدلے:(پ-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړېدلی- مؤنث پړېدلې- وګورئ پړېدل-

پړېدلے:(پهٔ-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پړېدلی- مؤنث پړېدلې- وګورئ پړېدل-

پړېدن:(پ-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړېدل-

پړېدن:(پهٔ-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پړېدل-

پړېدنګ:(پ-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړېدل-

پړېدنګ:(پهٔ-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پړېدل-

پړېدنه:(پ-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړېدل-

پړېدنه:(پهٔ-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پړېدل-

پړېدونکے:(پ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړېدونکی- مؤنث پړېدونکې- وګورئ پړېدل-

پړېدونکے:(پهٔ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پړېدونکی- مؤنث پړېدونکې- وګورئ پړېدل-

پړېدهٔ:(پ-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پړېدل-

پړېدهٔ:(پهٔ-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پړېدل-

پړی:(پ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ ګټو، خښتو، کاڼو يا خاورې پهٔ ترتيب سره جوړه شوې دلۍ يا انبار چې مختلف ځايونو کښې مختلف ورډوالے، پلنوالے او بلندی لری- (۲)دَ غلې دَ بورو انبار- (۲)پوړی- (عاميانه)-

پُړی:(پ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)پوټۍ- (۲)خلته- کځوړی- کځوړه- ګوتی- (۲)دَ کاغذ نه جوړه شوې لفافه چې پکښې سودا وغېره ورکېدے شی-

پړی پړی:(پ-ړی-پ-ړی)اسم- قطار قطار- سر پهٔ سر- پهٔ منظم طريقې سره-

پړے:(پهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- لهٔ مېزرۍ، سپښو، وښو، لوښې، پلاسټک، منجو، سڼو يا داسې نورو ځيزونو نه غښتلے شوے مزے- بدريږه- رسی- بياسته- جمع پړی-

پز:(پز)اسم صوت- پړ- پر- تز- ټپز- ګوز-

پز پړېکړے:(پز-پړې-کهٔ-ړے)اسم صفت- (۱)پوز پړېکړے- (۲)بې حيا- بې شرم- (۲)شرمېدلے- بې عزته شوے- جمع پز پړېکړی- مؤنث پز پړېکړې-

پزغمے:(پز-غه-مے)اسم- واحد- مذکر- چارګل- مېخکے- مېخکه- خلے- ټپکه- دَ پوزې يو پسول- جمع پزغمی-

پزنول:(پز-ن-ول)مصدر متعدی- چيت پيت کول- چخنی کول-

پزنولے:(پز-ن-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پزنولی- مؤنث پزنولې- وګورئ پزنول-

پزنون:(پز-ن-ون)حاصل مصدر- وګورئ پزنول-

پزنونګ:(پز-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پزنول-

پزنونه:(پز-ن-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پزنول-

پزول ۱:(پ-زه-ول)مصدر متعدی- ويرول- بيرول- ډارول-

پزول ۲:(پ-زه-ول)مصدر- (۱)پز وهل- پهٔ نشتر وينه اېستل- څېرل- (۲)غول- بدکاری کول- (عاميانه)-

پزولے:(پ-زه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پزولی- مؤنث پزولې- وګورئ پزول ۱-

پزولے:(پ-زه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پزولی- مؤنث پزولې- وګورئ پزول ۲-

پزون:(پ-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پزول ۱-

پزون:(پ-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پزول ۲-

پزونګ:(پ-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پزول ۱-

پزونګ:(پ-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پزول ۲-

پزونه:(پ-زه-وهٔ-ن)حاصل مصدر- وګورئ پزول ۱-

پزونه:(پ-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پزول ۲-

پزونے:(پ-زه-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پزونی- مؤنث پزونې- وګورئ پزول ۱-

پزونے:(پَ-زه-وو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پزونی- مؤنث پزونې- وګورئ پزول ۲-

پزونے:(پَ-زُو-نے)اسم- واحد- مذکر- پزوهونے- دَ زخم څیرلو آله- نشتر- الماس-

پزومل:(پز-وَ-مَل)مصدر- پزول- پژومل- شلول- څیرې کول- دَ دانې یا بل کوم نوژن زخم پۀ نشتر څیرل-

پزوملے:(پز-وَ-مۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پزوملی- مؤنث پزوملې- وګورئ پزومل-

پزومنه:(پز-و-مۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پزومل-

پزومونکے:(پز-وَ-مُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پزومونکی- مؤنث پزومونکې- وګورئ پزومل-

پزه:(پۀ-زه)اسم- واحد- مؤنث- پوزه- سونړه-

پزی:(پَ-زی)اسمِ صفت- دَ پُوزی سره متعلق- دَ پُوزی نه جوړ شوے-

پزېدل ۱:(پَ-زې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)خُوښېدل- خټکېدل- پښېدل- خوښ خوړل- (۲)ژوبل کېدل-

پزېدل ۲:(پۀ-زې-دَل)مصدرِ لازم- تړېدل- تېزونه اچول- پزېز کول- (افغانستان)-

پزېدلے:(پَ-زې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پزېدلی- مؤنث پزېدلې- وګورئ پزېدل ۱-

پزېدلے:(پۀ-زې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پزېدلی- مؤنث پزېدلې- وګورئ پزېدل ۲-

پزېدن:(پَ-زې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پزېدل ۱-

پزېدن:(پَ-زې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پزېدل ۲-

پزېدنګ:(پَ-زې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پزېدل ۱-

پزېدنګ:(پَ-زې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پزېدل ۲-

پزېدنه:(پَ-زې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پزېدل ۱-

پزېدنه:(پَ-زې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پزېدل ۲-

پزېدونکے:(پَ-زې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پزېدونکی- مؤنث پزېدونکې- وګورئ پزېدل ۱-

پزېدونکے:(پَ-زې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پزېدونکی- مؤنث پزېدونکې- وګورئ پزېدل ۲-

پزېدۀ:(پَ-زې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پزېدل ۱-

پزېدۀ:(پَ-زې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پزېدل ۲-

پزے:(پَ-زے)اسم- بوڼیں- بوئ- وړم-

پژاوه:(پَ-ژا-وه)اسم- واحد- مؤنث- پژه- خون- دَ کلال دَ کچه خاورینو ... و دَ پخولو بټۍ- جمع پژاوې-

پژرکے:(پَ-ژر-کے)اسمِ صفت- (۱)قهرژن- غضب ناک- لۀ غصې ډک- حملې ته تیار- (۲)خفه- (۳)ژر خفه کېدونکے- جمع پژرکی-

پژمرده:(پژ-مُر-ده)اسمِ صفت- واحد- مذکر- مړژواندے- خفه- مړسپن- جینجړ- مړغېژن- مړغوژن- (م- فارسی)-

پژواک:(پژ-واک)اسم- واحد- مذکر- دَ یو کل نوم- جمع پژواکُونه-

پژوال:(پژ-وال)اسم- واحد- مذکر- (۱)خادم- نوکر- (۲)خوشامندګر- جمع پژوالان-

پژوالی:(پژ-وا-لی)اسم- دَ پژوال جوړېدو حالت- وګورئ پژوال-

پژه:(پَ-ژه)اسم- واحد- مؤنث- پژاوه- خون- دَ کُلال بټۍ- جمع پژې-

پـژے:(پـۀ-ژے)اسم- واحـد- مـذکـر- جُـثـه- انـدام- قـواره- جـمع پـژی- (افغانستان)-

پېږدل:(پېږ-دَل)مصدر- پېړل- تراشل- توږل- تراشول- تروشل- (عامیانه)-

پېړل:(پَ-ړَل)مصدر- تراشل- پېږدل- توږل- تراشول- تروشول-

پېړلے:(پَ-ړۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پېړلی- مؤنث پېړلې- وګورئ پېړل-

پېړنه:(پَ-ړۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پېړل-

پېړونکے:(پَ-ړُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پېړونکی- مؤنث پېړونکې- وګورئ پېړل-

پېړوے:(پېړ-وے)اسم- واحد- مذکر- دَ تنستې سر او پښو ته لګېدلے لرګے- جمع پېړوی- (افغانستان)-

پېړے:(پۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سکه- وجود- څېره- بشره- مُشاده- (۲)لېچه- لېڅه- دَ لاس دَ ګُتو نه تر څنګلې پورې حصه- جمع پېړی-

پس:(پَس)اسمِ صوت- (۱)معمولی او کمزورے اواز- نرے اواز- (۲)دَ هوا دَ خارجېدو اواز- (۳)پُسکی- پوسکی- پسکه-

پس:(پَس)حرف- (۱)بیا- نو- وروستو- (م- فارسی)-

پس انداز:(پَس-اَن-داز)اسم- باقی- بچت- وروستو پاتې-

پسات:(پَ-سات)اسم- واحد- مذکر- فساد- شر- جمع پساتونه- (کول/جوړول مصدرونه)- (م- عربی فساد)-

پساتنه:(پَ-سا-تۀ-نه)اسمِ صفت- دَ "پساتی" مؤنث- فسادی ښځه- جمع پساتنې-

پساتی:(پَ-سا-تی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- فسادی- بد سړے- وران سړے- فساد جوړونکے- جګړمار- جمع پساتیان- (م- فسادی- فارسی)-

پساره:(پَ-سا-ره)اسم- دَ "پسور" مغیّره حالت-

پساری:(پَ-سا-ری)اسم- واحد- مذکر- پنساری- دَ دوائی دَ پاره دَ جاړو بوټو خرڅونکے- پرچون فروش- جمع پساریان- (م- هندی)-

پسالۀ:(پَسا-لۀ)اسم- واحد- مذکر- دَ "پسولۀ" مغیّره حالت- کالے- کاڼه-

ی" (څی-رل)، ې"(مې-ره-وِل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پسالۀ:(پسا-لۀ)دَ "پسلولل" نه ماضی- (خوشحال بابا)-

پسان:(پ-سان)اسم- واحد- مذکر- بلور- دَ بلور کاڼے- نوزے- دَ څرخ کاڼے- جمع پسانونه- (افغانستان)-

پساؤ:(پ-ساؤ)اسم- (۱)پاتې شوی ښوروا- کنوبے- (۲)کنکخرے- کنکخرے- گندخرے- (۳)هغه زمکه چې آخر کښې پرته وی او لۀ ټولو وروستو اُبۀ کیږی- (۴)هغه اُبۀ چې جامې پکښې وینځلے شی او بیا پکښې نورې جامې خوشتې شی-

پسانی:(پ-سا-نی)اسم- (۱)دَ اوړولو یا مېده کولو کار- (۲)دَ اوړولو مزدوری- جمع پسانی- (م- هندی)-

پسپا:(پس-پا)صفت- پۀ ماتې- (م- فارسی)-

پسپائی:(پس-پا-ئی)اسم- دَ پسپا کېدو حالت- شکست- پۀ جنگ کښې وروستو کېدنه- (م- فارسی)-

پسِ پرده:(پ-سِ-پر-ده)صفت- د پردې شا ته- پنا- پټ- چپ پۀ چپه- پۀ چپه خُلۀ- (م- فارسی)-

پس پس:(پس-پس)اسم- واحد- مذکر- پُس پُس- دَ چا سره پۀ غوږ کښې پټې پټې خبرې-

پس پسے:(پس-پۀ-سے)متعلق فعل- پسې پسې- وروستو وروستو- زرپسې-

پس پسے:(پس-پۀ-سے)اسم- واحد- مذکر- پس پس- غوږلوڅی- دَ شونډو پۀ سر پټې پټې خبرې- پۀ غوږ کښې پټې خبرې- پسېدنه- جمع پس پسی-

پست:(پست)اسمِ صفت- (۱)ښکته- ټیټ- لاندې- (۲)ذلیل- کمینه- پربوتے- (م- فارسی)-

پستان:(پس-تان)اسم- جمع- مؤنث- دَ ښځې سینه- دَ تی سر- (م- فارسی)-

پستاندار:(پس-تان-دار)اسمِ صفت- تی لرونکې- پئ ورکونکې- (م- فارسی)-

پستکی:(پس-ت-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پستوکی- پوڅکی- (۲)نرم و نازک- (۳)دَ مینې پۀ ډول بچی ته ورنیلے کیږی- (افغانستان)-

پستنه:(پس-ت-نه)متعلق فعل- (۱)واپس- واپسی- (۲)بیرته گرځېدنه- شا ته- (۳)باقی- تے- الټی- کانګې- (افغانستان)-

پستو:(پس-تو)اسم- واحد- مؤنث- پۀ کمره کښې جوړه هغه بله کمره چې بکسونه پکښې اېښوے شی- صندوق خانه-

پستو:(پس-تُو)اسم- واحد- مذکر- پسخانه- پس خونه- دَ بادشاه هغه سامان چې دَ دوی دَ روانېدو نه پس وړلے کیږی- جمع پستوګان-

پستوالے:(پست-وا-لے)اسم- (۱)پوستوالے- نرموالے- (۲)لاندې والے- ټیټوالے- جمع پستوالی-

پستور:(پس-ت-ور)اسم- واحد- مذکر- پونه- نرم باران- نری څاڅکی- ښورمک- نرمه شبکره- پشم- پسته وور- پوست وور- (م- بسته- نرم (مؤنث)- وور- باران)-

پستورکې:(پست-ور-کې)اسم- واحد- مؤنث- دَ پستورکی مؤنث- وګورئ پستورکے-

پستورکے:(پست-ور-کے)اسم- واحد- مذکر- نرمه او پسته وړی لرونکے کږ- مؤنث پستورکې-

پستوړۀ:(پس-تو-ړۀ)اسم- جمع- مذکر- پاستۀ اوړۀ- ترمېده- مندیه اوړۀ- مېده اوړۀ- (دَ پاستۀ اوړۀ مخفّف)-

پستوکے:(پس-تو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ پستکی- جمع پستوکی- (۲)دَ پوست اسم تصغیر- ډېر نرم-

پستول ۱:(پس-تول)اسم- واحد- مذکر- تماچه- هغه تماچه چې ګاټے یا څرخ نۀ لری- (م- انګریزی)-

پستول ۲:(پس-ت-ول)مصدرِ متعدی- (۱)نرمول- (۲)مېده کول- (۳)ړبول- ښۀ وهل- ټکول-

پستون:(پس-ت-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پستول ۲-

پستونکے:(پس-ت-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پستونکی- مؤنث پستونکې- وګورئ پستول ۲-

پستونګ:(پس-ت-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پستول ۲-

پستونه:(پس-ت-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پستول ۲-

پستونے:(پس-ت-وو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پستونی- مؤنث پستونې- وګورئ پستول ۲-

پستوونے:(پس-ت-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- نرم لرګی لرونکې وُنه چې دَ لیندو جوړولو دَ پاره پکارولے شي-

پسته:(پس-ته)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- دَ پوست مؤنث- نرمه- ملائمه-

پسته:(پس-ته)متعلق فعل- وروستو- بیا- بل وار- بل ځل-

پسته:(پس-ته)اسم- دَ پنډی غوښه-

پسته:(پس-ته)حرف- دَ اس دَ وروستو کولو دَ پاره استعمالېدونکے تورے- بچ شه- (افغانستان)-

پسته:(پس-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ مغربی اېشیا پۀ ملکونو کښې کېدونکې دَ بادام پۀ شان یوه وړه وُنه او دَ هغې مېوه- نباتاتی نوم پټا شیا وېرا- (م- فارسی- س- اطالوی، لاطینی او یونانی)-

پسته وور:(پس-ته-وور)اسم- وګورئ پستور-

پستی:(پس-تی)اسم- مؤنث- (۱)ذلت- لاندې والے- ښکته والے- (۲)ذلیل توب- جمع پستې- (م- فارسی)-

پستې:(پس-تې)اسم- واحد جمع- مؤنث- دَ ژبې آخر کښې حلق نه خوړنده غوښه- کنګی- حلقی- الکی- کنکی- ژبی- وړه ژبه-

پستېدل:(پس-تې-دل)مصدرِ لازم- (۱)نرمېدل- مېده کېدل- (۲)وهلے کېدل- ړبېدل- (۳)خبرې ته راضی کېدل- خبرې ته غاړه اېښول- (۴)غصه سړېدل-

پستېدن:(پس-تې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پستېدل-

پستېدنګ:(پس-تې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پستېدل-

پستېدونکے:(پس-تې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پستېدونکی-

مؤنث پستېدونکې- وګورئ پستېدل-
پستېدهٔ:(پس-تې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پستېدل-
پستې:(پ-س-تې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بازیګره- بازیګړه کوتره-
پسخاک:(پس-خاک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پخساک-
پسخاکی:(پس-خا-کی)اسم- د پسخاک سره متعلق-
پسخانه:(پس-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پستو- جمع پسخانې-
پسخاوه:(پس-خا-وه)اسم صفت- خټبېل- کړلے- د یشبدلی او خوښېدلی څیز نه ابستې اُبهٔ- پساوه-
پسخند:(پس-خند)اسم- واحد- مذکر- پیشاړه- ملنډه- پېچموزه- ټوقه- (م- فارسی)-
پسخندے:(پس-خن-دے)اسم فاعل- واحد- مذکر- پیشاړې کونکے- ټوقې کونکے- رښخند- ټوقمار- جمع پسخندیان- مؤنث پسخنده- جمع مؤنث پسخندیانې-
پس خورده:(پس-خور-ده)اسم- (۱)پاتې شوے خوراک- پاتې شونے- جوټه- (۲)کنکر- کنکړ- (م- فارسی)-
پسخول:(پس-خول)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اربې د خلې بوره- (۲)پوګ-
پسخول:(پس-خ-ول)مصدر- وګورئ پخسول-
پسخون:(پس-خ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پخسول-
پسخونګ:(پس-خ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پخسول-
پسخونه:(پس-خو-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پستو-
پسخونه:(پس-خه-وهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پسخول-
پسخه:(پس-خه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پخسه-
پسخېدل:(پس-خې-دل)مصدر لازم- وګورئ پخسېدل-
پسخېدن:(پس-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پسخېدل-
پسخېدنګ:(پس-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پسخېدل-
پسخېدنه:(پس-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسخېدل-
پسخېدونکے:(پس-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسخېدونکی- مؤنث پسخېدونکې- وګورئ پسخېدل-
پسخېدهٔ:(پس-خې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پسخېدل-
پسر:(پ-سر)اسم- واحد- مذکر- ځوئ- زوئ- (م- فارسی)-
پسر:(پ-سر)اسم- وروستو کېدنه- وعده خلاف کېدنه- (کېدل مصدر)-
پسرلنے:(پسر-ل-نے)اسم صفت- د پسرلی یا سپرلی سره تعلق لرونکے- (افغانستان)-
پسرلے:(پ-سر-لے)اسم- واحد- مذکر- سپرلے- بهار- بُهار- د ګلونو موسم- ځوړمنے- د ژمی او د اوړی تر منځه د کال هغه ځلورمه حصه چې پکښې ونې بوټی وغېره زرغنېږی- جمع پسرلی-

پسرو:(پس-رو)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېرو- پسې تلونکے- وروستو تلونکے- خادم- نوکر- مرید- تابع- پېروکار- (م- فارسی)- (۲)غېبت- (افغانستان)- جمع پسروان-
پسرور:(پس-ر-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- پلن- چې عرض ئې زیات وی- سورور- پسور ور- (افغانستان)-
پسرول:(پ-س-ر-ول)مصدر متعدی- د سر د پاسه د لباس پهٔ ډول ایښول-
پسروونے(پ-س-ره-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- پړونے- څادر- غلاف- کتمې- شال- سدری- لوپټه- هغه ستر څادر چې زنانه ئې پسروی- جمع پسروونی-
پسروی:(پس-ر-وی)اسم- مؤنث- تابعداری- تقلید- د پېروکار جوړېدو حالت- (م- فارسی)-
پس شاه:(پ-سې-شا)متعلق فعل- وګورئ پسې شا-
پسکاوڼ:(پس-کا-وڼ)اسم صفت- (۱)پوسکاوڼ- پُسکن- هغه څوک چې زیاتې پُسکی اچوی- پُسکڼ- (۲)وړپل- بُزدل- مؤنث پسکاوڼه- جمع مؤنث پسکاوڼې-
پسکاوڼه:(پس-کا-وهٔ-ڼه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د "پسکاوڼ" مؤنث- وګورئ پسکاوڼ-
پسکن:(پس-کن)اسم صفت- وګورئ پسکاوڼ-
پسکڼ:(پس-کڼ)اسم صفت- وګورئ پُسکاوڼ- مؤنث پُسکڼه- جمع مؤنث پُسکڼې-
پسکورے:(پس-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- پیسکورے- وړوکے پسهٔ- جمع پسکوری-
پسکه:(پس-که)اسم- واحد- مؤنث- جزګی- پوسکی- پسکی- ټس- پس- جمع پسکې-
پسکه:(پس-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړسته بېدی- وړسته- (۲)هر ښځینه وروست څیز- (افغانستان)-
پسکې:(پس-کې)اسم- جمع- مؤنث- غوږلوګی- پټې پټې خبرې- پس پس-
پسکی:(پس-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پوسکی- پسکه- هغه هوا چې د کېډې نه د مقعد پهٔ لار بغېر لهٔ اوازه خارجیږی-
پسل:(پ-سل)اسم- واحد- مذکر- فصل- (۱)پېداوار- جمع پسلونه- (۲)راوړل- زغمل- وړل-
پسماندګی:(پس-مان-ده-ګی)اسم- د پسمانده کېدو حالت- وګورئ پسمانده- (م- فارسی)-
پسمانده:(پس-مان-ده)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- وارث- میراث خور- میرات خور- د مړی اولاد- جمع پسماندګان- (م- فارسی)-
پسمانده:(پس-مان-ده)اسم صفت- (۱)وروستو پاتې- د ترقی نه شا ته پاتې- (۲)بچت- باقی پاتې شوے- (م- فارسی)-
پس مرګی:(پس-مر-ګی)متعلق فعل/صفت- (۱)د پلار لهٔ مرګه پس پېدا

"ی" (ښی-رل)، "ي"(هي-ره-ول)، "ى"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

شوے- (۲)لۀ مرګه پس-

پس منظر :(پس-من-ظر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ منظر شا ته موجود خو پۀ نظر نۀ راتلونکے- (۲)دَ یوې واقعې اصل محرک او علت چې ښکارۀ نۀ ښکاري- (م- فارسي)-

پسند :(پسند)اسم صفت- خوښ- غوره- (م- فارسي)-

پسندل:(پسن-دل)مصدر- غوره کول- خوښول- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندلے :(پسن-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پسندلي- مؤنث پسندلې- وګورئ پسندل- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندنه:(پسن-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسندل- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندول:(پسن-دَ-وَل)مصدر- پسندل- غوره کول- خوښول- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندونکے :(پسن-ده-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسندونکي- مؤنث پسندونکې- وګورئ پسندول- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندونه:(پسن-ده-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسندول- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندونے:(پسن-ده-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسندوني- مؤنث پسندونې- وګورئ پسندول- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسنده:(پ-سن-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ غوښې وړه پارچه چې لړه لړه وټکولے شي او بیا غوړو کښې سره شي- جمع پسندې-

پسنده:(پسن-ده)اسم صفت- خوښه- غوره- قبوله-

پسندی:(پسن-دی)اسم صفت- خوښه- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندیده:(پ-سن-دی-ده)اسم صفت- خوښ- عزیز- مرغوب- محبوب- (م- فارسي)-

پسندېدل:(پسن-دې-دل)مصدر لازم- خوښېدل- پسند کېدل- منتخبېدل- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندېدن:(پسن-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پسندېدل- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندېدنه:(پسن-دې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسندېدل- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندېدونکے:(پسن-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسندېدونکي- مؤنث پسندېدونکې- وګورئ پسندېدل- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندېدۀ:(پسن-دې-دۀ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پسندېدل- (دَ فارسي پښتو مرکب)-

پسندے:(پسن-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ سپښتو لوبه- دَ بېړيو لوبه-

پسنېدل:(پس-نې-دل)مصدر لازم- پس پس کول- ورو ورو خبرې کول- پټ غږېدل- غوړی غوړی کېدل- (افغانستان)-

پسنېدن:(پس-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پسنېدل-

پسنېدنګ:(پس-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پسنېدل-

پسنېدنه:(پس-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسنېدل-

پسنېدونکے:(پس-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسنېدونکي- مؤنث پسنېدونکې- وګورئ پسنېدل-

پسنېدۀ:(پس-نې-دۀ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پسنېدل-

پسو :(پ-سو)حرف- پۀ څو- پڅو- (متروک)-

پسوا:(پس-وا)متعلق فعل- پښې شا- پشلا- پسې شا- شا ته- (افغانستان)-

پس و پېش:(پ-سو-پېش)اسم- (۱)انه بانه- بهانه- ډیل- (۲)وړاندې وروستو-

پسوتل:(پسو-تل)مصدر- رسېدل-

پسوتلے:(پسو-تۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پسوتلي- مؤنث پسوتلې- وګورئ پسوتل-

پسوتن:(پسو-تن)حاصل مصدر- وګورئ پسوتل-

پسوتنګ:(پسو-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ پسوتل-

پسوتنه:(پسو-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسوتل-

پسوتونکے:(پسو-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسوتونکي- مؤنث پسوتونکې- وګورئ پسوتل-

پسور :(پسور)اسم- واحد- مذکر- (۱)بر- سور- عرض- پلنوالے- (۲)پاټ- رخت- موده-

پسوروَر :(پسو-ر-وَر)صفت- پلن- سوروَر- پسرور-

پسوروړے :(پسو-ر-وۀ-ړے)صفت- خوروور- تس نس- جمع پسوروړي-

پسوکے :(پسو-کے)اسم تصغیر- وړوکے پسۀ- جمع پسوکي-

پسول:(پسول)اسم- واحد- مذکر- کانړه- کالے- جمع پسولونه/پسالۀ-

پسول:(پ-سه-وَل)مصدر متعدي- څکول- لۀ چیلمه زیات لوګے ایستل- پۀ سیګرټ، چیلم او پائپ باندې دَ څروسکو جوړول- (افغانستان)-

پسولل:(پسو-لل)مصدر متعدي- سینګارول- ښائسته کول- پړولی کول- کالی ور اچول- (افغانستان)-

پسوللے :(پسو-لۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پسوللي- مؤنث پسوللې- وګورئ پسولل-

پسولنه:(پسو-لۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسوال-

پسولول:(پسو-لَ-وَل)مصدر متعدي- (۱)پسولل- کالی وراغستل- (۲)پړولی کول- ښائسته کول-

پسولونکے :(پسو-لَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسولونکي- مؤنث پسولونکې- وګورئ پسولول-

پسولونه:(پسو-لَ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسولول-

پسولېدل:(پسو-لې-دل)مصدر لازم- سینګارېدل- ښائسته کېدل- ښکلے کېدل- (افغانستان)-

پسولېدلے :(پسو-لې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پسولېدلي-

مؤنث پسولېدلې- وګورئ پسولېدل-

پسولېدونکے:(پسو-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسولېدونکي- مؤنث پسولېدونکې- وګورئ پسولېدل-

پسولېدن:(پسو-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پسولېدل-

پسولېدنګ:(پسو-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پسولېدل-

پسولېدنه:(پسو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسولېدل-

پسولېدهٔ:(پسو-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پسولېدل-

پسه:(پ-سه)اسم- واحد- مذکر- هغه ګډ چې جرګې ته ورکولے شي- جمع پسونه-

پسه:(پ-سه)اسم- واحد- مؤنث- درمند کښې جمع کړے شوې کېږی- جمع پسې-

پسه:(پَ-سه)متعلق فعل- پس ته- بيا- پس دَ دې نه- وروستو-

پُسه:(پُ-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پسکه يا پُوسکې-

پُسه:(پُ-سه)اسم صفت- ساده- بې عقل- ناپوهه- عاجز- شوده-

پُسه:(پُ-سه)اسم- واحد- مذکر- يو خوندناک خوراک چې دَ مېده کړيو شوو اوړو او خوږو نه تيارولے شي- جمع پسې-

پسهٔ:(پسهٔ)اسم- واحد- مذکر- ګډ- ګېرلے- چېلے- چېرلے-

پسهار:(پس-هار)اسم صوت- پس پسے- پسهارے- پس پس کونه- پهٔ غوږ کښې پُس پُس کونه-

پسهارے:(پُس-ها-رے)اسم صوت- وګورئ پسهار-

پسی:(پَ-سی)اسم صفت- کبرژن- مغرور-

پسين:(پَ-سين)اسم صفت- آخرنے- وروستنے- آخری- (م- فارسی)-

پسينه:(پ-سی-نه)اسم صفت- وروستنے- دمُنينه ضد- دَ خپل وخت نه پس کرلے فصل-

پسيه:(پَ-س-يه)اسم- واحد- مؤنث- پسری- دَ شپون هغه انعام چې دَ وری يا ورغومی پېدا کېدو پهٔ موقع هغهٔ لره دَ مال خاوند ورکوی- (افغانستان)-

پسې:(پَ-سې)حرف جار- ورپسې- وروستو- شا ته-

پسې پسې:(پَ-سې-پَ-سې)اسم- ورپسې- وروستال- اخير- وروستو-

پسې شا:(پَ-سې-شا)متعلق فعل- غيب کښې- غېر موجودګی کښې- (اصل معنیٰ دَ شا (ملا) نه وروستو)-

پسېدل:(پَ-سې-دل)مصدر لازم- پس پس کول- پټې پټې خبرې کول-

پسېدن:(پَ-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پسېدل-

پسېدنګ:(پَ-سې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پسېدل-

پسېدنه:(پَ-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسېدل-

پسېدونکے:(پَ-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسېدونکی- مؤنث پسېدونکې- وګورئ پسېدل-

پسېدهٔ:(پَ-سې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پسېدل-

پسېره:(پ-سې-ره)متعلق فعل- (۱)سر بېره پهٔ دې- علاوه لهٔ دې نه- (۲)دَ پاسه- باندې- پر- (افغانستان)-

پسېرېدل:(پَ-سې-رې-دل)مصدر لازم- سربېره کېدل-

پسېرېدن:(پَ-سې-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پسېرېدل-

پسېرېدنګ:(پَ-سې-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پسېرېدل-

پسېرېدنه:(پَ-سې-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پسېرېدل-

پسېرېدونکے:(پَ-سې-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پسېرېدونکی- مؤنث پسېرېدونکې- وګورئ پسېرېدل-

پسېرېدهٔ:(پَ-سې-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ پسېرېدل-

پسی:(پَ-سی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پاسی- پانسی- زندی- پهٔ خوږنده مرګ- (۲)دار- سولی- غرغره-

پسے:(پهٔ-سے)اسم- واحد- مذکر- موسی-

پسے:(پَ-سے)اسم- واحد- مذکر- ککړے- پسه- هغه زبرے چې دَ کور دَ خاوند لهٔ خوا شپون ته دَ وری دَ پېدا کېدو پهٔ وخت کښې ورکولے شي- (۲)دَ جينۍ دَ پېدا کېدو پهٔ مناسبت شيريني- جمع پسی-

پُسے:(پُ-سے)اسم- واحد- مذکر- چېلے، چېلی، کډه، سويه او داسې نور څناور-

پش:(پش)اسم- واحد- مذکر- پيش- پشے- پشک- جمع پشان- مؤنث پشه- جمع مؤنث پشې-

پش:(پش)اسم صوت- دَ مار اواز- دَ باد اواز- پشهار- پرش- دَ بولو اواز- پش پشے- پش پش-

پشار:(پَ-شار)اسم- واحد- مذکر- پېروے- ملانی- قيماق- اریاش- رش- قيماغ- جمع پشارونه-

پشاړه:(پَ-شا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وشته- ملنډه- پېچموزه- مسخره- جمع پشاړې (کول/جوړول مصدرونه)-

پش پش:(پش-پش)اسم صوت- وړوکی ماشوم ته دَ موتيازو کولو پهٔ وخت استعمالېدونکے اواز-

پش پش:(پش-پش)اسم صوت- پيش پيش- دَ پيشوګانو دَ رابللو اواز- پشې-

پشت:(پشت)اسم صوت- دَ پيشو دَ شړلو اواز- پشی شه- پشې- پيشې- پشته-

پشت:(پشت)اسم- دَ نيم پخته اُربشو پهٔ مېچن اوړهٔ شوی اوړهٔ-

پشت:(پُشت)اسم- واحد- مذکر- خاندان- نسل- خېل- پېړی-

پشت:(پُشت)اسم- واحد- مذکر- دَ چرګې پهٔ کېږ کښې دَ اګی ځایَ- (۲)دَ چرګې پهٔ يو مخ اچولې اګی-

پشتاره:(پُش-تا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بار- (۲)ډېر مقدار- بوج- ډېرے- انبار- دلی- جمع پشتارې- (م- فارسی)-

پشتاره:(پُش-تا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ګلونو ټوکری-

پشت پنا:(پُشتَ-پَ-نا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ساتونکے- محافظ- ساتندویه- (۲- اسم)دَ لویو خلقو باورچیخانه- (م- فارسی)-

پشت پناهی:(پُشتَ-پَ-نا-هی)اسم- ساتنه- حمایت- مدد- (م- فارسی)-

پشتپی:(پِش-تَ-پی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پشتی پا-

پشتک:(پِش-تک)اسم صفت- واحد- مذکر- پیشاکے- پیشتے- لنډے- دَ وړوکی قد لرونکے-

پشتک:(پِش-تک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ اسونو یوه بیماری- (۲)دَ ماشومانو یوه لوبه-

پشتواره:(پشتَ-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ګلونو ټوکری- پُشتاره-

پشته:(پُش-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټکر- بند- ړانګه- دَ سېلابی اُبو دَ مخ نیوی دَ پاره دَ خټو کاڼو جوړه ډېری- (۲)هغه کپړه یا څرمه چې جلد ساز یَې دَ کتاب شا ته لګوی- متوا- وقایه- (۳)ړېره- دَ غرهٔ یا غنډی ړېره-

پشته:(پِش-ته)اسم صوت- دَ پیشو دَ شړلو اواز-

پشته پایه:(پِش-ته-پا-یه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پشتی پا-

پشتي:(پُش-تي)اسم- واحد- مؤنث- ټېک- پیشتي- پوشتي- زوړ دېوال ته دَ مضبوطیا پهٔ غرض وهلے شوے وړوکے دېوال یا ډېره-

پشتي:(پِش-تي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرسته- (۲)یو وړوکے ښکاری سپے-

پشتی پا:(پِش-تی-پا)اسم- دَ پښې هغه حصه چې کُټې ګُتې او ورپسې ګُتې ته مخامخ او لړه غنډې بهر ته راوتې وی- پیشتی پا- پشته پایه- پشتپی-

پشتے:(پِش-تے)اسم- واحد- مذکر- پاپی کک- چینی کک- پسته- یو وړوکے سپین سپے-

پشخل:(پِش-خل)اسم- واحد- مذکر- کنکخرے- کنکخړے- نیزوړے- ګند خرے- دَ سېلاب اُبو راوړے خس و خاشاک-

پشخور:(پَ-شَ-خور)اسم- واحد- مذکر- کلک لرګے لرونکے یوه وُنه چې دَ یوې کُندې ترې جوړیږی-

پشخورکه:(پِش-خوه-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- یوه غرنیزه وُنه چې مېوه یَې وړه شان وی- جمع پش خورکې-

پشرل:(پِش-رل)اسم- واحد- مذکر- دَ کېږې دوه کلَنے بچے-

پشرلے:(پِش-رهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ چېلۍ وړوکے بچے- بره چېلوکے- جمع پشرلی- مؤنث پشرلی-

پش غوره:(پِش-غوه-ړه)اسم- سپین غوړونه لرونکې چېلۍ-

پشقاب:(پِش-قاب)اسم- واحد- مذکر- پشکاپ- پرچ- غاب- رکېبۍ- مشقاب- نالبکے- لولبېکے-

پشک:(پَ-شک)اسم- واحد- مذکر- سپوږے- پیشک- دَ څرمنې یوه متعدی بیماری-

پشک:(پَ-شک)اسم- واحد- مذکر- ټپوس- ټپس- مُردار خور ټپوس- ګدو- کرکس- کرکس- جمع پشکان-

پشکاپ:(پِش-کاپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پشقاب-

پشکال:(پَ-شَ-کال)اسم- واحد- مذکر- دَ فصلی کال څلورمه میاشت- ساوڼ- بشکال- دَ اوړی دَ بارانونو موسم-

پشکالی:(پَ-شَ-کا-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- برساتی- بارانی- دَ باران کوټ-

پشکالے:(پَ-شَ-کا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه مېوه یا فصل چې پشکال کښې رارسی یا کرلے شی- (۲)پهٔ پشکال کښې رېبلی شوی وُچ واښهٔ- (۲)هغه سوررنګے چینجے چې پهٔ پشکال کښې پېدا کیږی او کبان پرې نیولے کیږی-

پشکنړے:(پِش-کن-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ پیشو بچے- پشونګړے- جمع پشکنړی-

پشکه:(پِش-که)اسم- واحد- مؤنث- داره- دَ ابو یا دَ وینې داره- پلپشکه- جمع پشکې-

پشکي:(پِش-کي)اسم- واحد/جمع- مونث- دَ پشکی مؤنث- وګورئ پشکے-

پشکے:(پِش-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم زهرژن مار- جمع پشکی-

پشکے:(پِش-کے)اسم- (۱)نرم دست- (۲)لوئ بول چې لکه دَ اُبو نری وی- جمع پشکی-

پشلا:(پَ-شَ-لا)متعلق فعل- (۱)پشی شا- پهٔ شا- پهٔ غېر موجودګۍ کښې- پسی شا- (۲)پهٔ څټ کښې- (افغانستان)-

پشلره:(پِش-لهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اخنک-

پشلے:(پَ-شهٔ-لے)اسم- دَ تودو مايعاتو دَ کاشوغې پهٔ ذريعه سړونه-

پشم:(پَ-شم)اسم- واحد- مذکر- (۱)وړی- (۲)پرخه- نرے باران- ښورمک- شوغ- پشمک- (۳)ډېر نازک او نرم وېښتهٔ- (۴)دَ شرمګاه وېښتهٔ- (۵)بې حقیقته سړے- (م- فارسی)-

پشمکه:(پِش-م-که)اسم- واحد- مؤنث- زمی- یو قسم بوټے چې دَ جامو وینځلو دَ پاره پکارولے شی-

پشمنے:(پِش-م-نے)اسم- واحد- مذکر- پړشمے- پېش نمے- چربانګے- جمع پشمنی-

پشمي:(پِش-مي)اسم صفت- وړين- دَ وړی نه جوړ- اونی-

پشمين:(پِش-مين)اسم صفت- پشم لرونکے- نرم- دَ وړی نه جوړ-

پشمينه:(پِش-می-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)پشمی- وړينه- پشم لرونکې- (۲)یوه وړينه جامه-

پشمينه:(پِش-می-نه)اسم- واحد- مؤنث- رېښمينه- پشمی لوپټه چې دَ پاسه پرې نرے نرے پشم یا غونے یا بُر وی-

پشمے:(پِش-مے)اسم- واحد- مذکر- جونګے- دَ اوښ دوه کلَنے بچے- جمع پشمی-

پشندے:(پَ-شن-دے)اسم- واحد- مذکر- بغندے- چورلندے- دَ ماشومانو دَ لوبو یو پرپرکے- جمع پشندی-

پشنګ:(پَ-شنګ)اسم- واحد- مذکر- هغه قچر، اس یا خر چې دَ کاروان پهٔ

سر کښې روان وی- (افغانستان)-

پشنکورے:(پ-شنک-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- د پیشو بچے- پیشنکورے- پیشونګړے-

پشو:(پ-شو)اسم- واحد- مؤنث- وګوری پیشو- جمع پشوګانې-

پشوا:(پش-وا)حرف جار- پسې شا- پشی شا-

پشواز:(پش-واز)اسم- واحد- مذکر- (۱)خلکی- د لښتی د کډا جامه چې ګلداره وی- (۲)یو قسم قمیص- جمع پشوازونه-

پشوپړانګ:(پ-شو-پړانګ)اسم- واحد- مذکر- پشوپړان- پیشوپړانګ- ځنګلی پیش-

پشوپړی:(پ-شو-پړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- په پنډوس (غنډسکه) کېدونکې د ماشومانو یوه لوبه- (افغانستان)-

پشوخټ:(پ-شو-خټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پیشوخټ- یو خودرو وړوکے بوټے او د ھغه ګل چې زمیندار ئې غوایانو ته غاړه کښې اچوی- (۲)د لوبو یو شے چې لاندینی حصه ئې درنه وی او چې کله ئې په زمکه کیږدی نو نېغ ودریږی- (۲- صفت)- چُست او چالاک ټیمرے سړے-

پشوکی:(پ-شو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د پشوکی مؤنث- وګوری پشوکے ۱- (۲)وګوری پشوکے ۲-

پشوکے:(پ-شو-کے)اسم- واحد- مذکر- نر پیش- پیشوکے- پشنګر- پشکوټے- پشنکورے- د پیش بچے-

پشوکے:(پ-شو-کے)اسم- واحد- مذکر- پیشوکے- په غنمو، شوتلو او ببرز وغیره کښې پیدا کېدونکې حشره- جغبور-

پشول:(پهٔ-ش-ول)مصدر متعدی- پرشول- د مار غصه کول-

پشولمے:(پ-شول-مے)اسم- واحد- مذکر- جینجړ-

پشومپړی:(پ-شوم-پړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ړغړغے- انخنج- یوه لوبه چې واړهٔ په پنډوس یو بل ولی-

پشونګړے:(پ-شونګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پیشو بچے- (۲)وړوکے ځیز-

پشه:(پهٔ-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پیشو- پشی- جمع پشې- (۲- اسم صوت)پشې- پشتکې- پیشتې- پشتې-

پشه:(پ-شه)اسم- واحد- مؤنث- زمے- توکم- تپه- ډله- قام- ټولے- فرقه- جمع پشې-

پشه:(پ-شه)اسم- واحد- مؤنث- پشک-

پشه بند:(پ-شه-بند)اسم- واحد- مذکر- مچردانی- منګس خانه- پشه خانه- هغه جالی چې د کټ یا چپرکټ د پاسه د کوټې په شکل جوړیږی چې د ماشو د ننوتلو مخه ونیسی- (افغانستان)-

پشه خانه:(پ-شه-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری پشه بند-

پشه خورکه:(پهٔ-شه-خوه-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- ماشی یا مچان خوړونکې یوه مرغۍ-

پشهار:(پ-شه-هار)اسم صوت- د مار یا باد د پش پش اواز- پښهار-

پشی شا:(پهٔ-شی-شا)متعلق فعل- پیشی شا- وګوری پسې شا-

پشیز:(پ-شیز)اسم- واحد- مذکر- وګوری پشیزه-

پشیزه:(پ-شی-زه)اسم- واحد- مؤنث- یوه کم قیمته پخوانی سکه- جمع پشیزې-

پشې:(پهٔ-شی)اسم صوت- د پیشو د شړلو اواز- پیشې- پیشته- پیشتې- پیشتې-

پشې:(پهٔ-شې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- متیازې- (د ماشومانو تورے)-

پشې کنه:(پ-شې-کُ-نه)صفت/متعلق فعل- پیشه کنه- مخ په شا- اپوټه-

پشېدل:(پهٔ-شې-دل)مصدر لازم- پرشېدل- د مار اواز وبستل- د مار روانېدل-

پشېدن:(پهٔ-شې-دن)حاصل مصدر- وګوری پشېدل-

پشېدنګ:(پهٔ-شې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری پشېدل-

پشېدنه:(پهٔ-شې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری پشېدل-

پشېدونکے:(پهٔ-شې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پشېدونکی- مؤنث پشېدونکې- وګوری پشېدل-

پشېدهٔ:(پهٔ-شې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګوری پشېدل-

پشېرلے:(پهٔ-شېر-لے)اسم- واحد- مذکر- وګوری پشرلے-

پشېره:(پ-شې-ره)اسم- واحد- مؤنث- یوه ډېره کم قیمته پخوانی سکه- پشیزه- (م- فارسی)-

پښی:(پ-ښی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پښه- پیښی- سپیښو- پښکی- یو قسم چینجے چې خارښت لګوی-

پښی:(پ-ښی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه غنم، چڼې چې په اور کښې نینې کیږی- تراړه- ډاړه- الوی- (افغانستان)-

پښے:(پ-ښے)اسم- واحد- مذکر- وړوکی او غټ شان غوړونه لرونکے کړ-

پښے:(پ-ښے)اسم- واحد- مذکر- د کاڼو په ذریعه د دوو ماشومانو تر مېنځه کېدونکې لوبه- جمع پښی-

پښے:(پ-ښے)اسم- واحد- مذکر- پښت- پښت- پښ- پېړی- قبیله- خاندان- جمع پښی-

پښ:(پښ)اسم- واحد- مذکر- لوهار- اینګر- پش- جمع پښان-

پښ:(پښ)اسم صوت- پش- د مار یا د هوا د چلېدو اواز-

پښانګه:(پ-ښانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- د مشک پښه- د غړکې پښې-

پښاوندے:(پښا-ون-دے)اسم- واحد- مذکر- پښوندے، پښندے- د ځناور د پښې تړلو پړے یا رسی- جمع پښاوندی-

پښاوے:(پ-ښا-وے)اسم- خبره پښونه- مضبوطیا-

پښبني:(پښ-ب-نی)اسم- واحد- مؤنث- د ځرمنې نه جوړه بنی چې لوهار، اینګر ئې په خپل دکان کښې د اور تېزولو د پاره استعمالوی- (افغانستان)-

ئ (ځی-رل)، ې (ھې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګوری تشریحات صفحه ۱

پښ پښے:(پښ-پۀ-ښے)اسم صفت- هغه سړے چې اواز يې ناست وی- جمع پښ پښی- مؤنث پښ پښې- جمع مؤنث پښ پښې-

پښت:(پښت)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)ستو- ستوان- نيني شوی جوار يا غنم چې اوړۀ کړے شي او بيا ورسره ګړه ګډه کړے شي- (۲)اوړۀ کړے توت- (افغانستان)-

پښت:(پُښت)اسم- واحد- مذکر- خاندان- نسل- پېړی- پشت- خېل- ټبر- اصل- پشه- نسل- ريشه-

پښتانۀ:(پښ-تا-نۀ)اسم- جمع- مذکر- د پښتون جمع- د "د"، "لۀ" او "پۀ" نه وروستو د پښتون مغيره حالت لکه د پښتانۀ-

پښت پۀ پښت:(پښت-پۀ-پښت)اسم (مرکب)- پُش پۀ پُش- پېړی پۀ پېړی- پُشت پۀ پُشت-

پښتل:(پښ-تَل)مصدر- تپوس کول- سوال کول-

پښتلے:(پښ-تۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پُښتلی- مؤنث پُښتلې- وګوره پښتل-

پښتنواله:(پښ-تَن-وا-له)اسم- مؤنث- (۱)پښتونواله- پښتونوالی- د پښتنو دود دستور- (۲)غېرت- (۳)وفاداری- (۴)د پښتنو ضابطه اخلاق-

پښتنوالے:(پښ-تَن-وا-لے)اسم صفت- پښتونولي- وګوره پښتنواله-

پښتنه:(پښ-تَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- د پښتون مؤنث- پښتنه ښځه-

پښتنه:(پښ-تۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- تپوس- اجازت- جمع پښتنې-

پښتنی:(پښ-تَ-نی)اسم صفت- د "پښتون" د شان سره سم- د "پښتون" متعلق- (نوے لفظ)-

پښتو:(پښ-تو)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د پښتو ژبه- (۲)ننګ- غېرت- (۳)د پښتو دود دستور- (۴)پښتنواله-

پښتوب:(پښ-توب)اسم- د لوماری کار- پښګيرت- پښګيری-

پښتورکے:(پښ-تَ-وَر-کے)اسم- واحد- مذکر- ګرده- بډوکے- هغه اندام چې تشې متيازې ترې پوکنی ته ځی-

پښتورکے:(پښ-ته-ور-کے)اسم- واحد- مذکر- د بادام پۀ شان ميوه نيونکې يوه غړنيزه ونه- جمع پښتورکي-

پښتو ژبے:(پښ-تو-ژۀ-بے)اسم- واحد- مذکر- پښتو ويونکے- هغه څوک چې پښتو وائی-

پښتون:(پښ-تون)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پښتانۀ لۀ نسله- د "پښتون" قام يو غړے- (۲)پښتون قوم- (۳)غېرتی- د ښو اخلاقو خاوند- د ننګ او پت خاوند- (۴)جمع پښتانۀ-

پښتونخا:(پښ-تون-خا)اسم- واحد- مؤنث- پښتونخوا- د پښتنو سيمه- د پښتنو د وسېدو ځاے-

پښتونخوا:(پښ-تون-خوا)اسم- واحد- مؤنث- وګوره پښتونخا-

پښتونګلوی:(پښ-تون-ګل-وی)اسم- پښتونولي- پښتونواله- پښتنواله- د پښتنو دود دستور-

پښتونواله:(پښ-تون-وا-له)اسم- وګوره پښتنواله-

پښتونولي:(پښ-تون-و-لي)اسم صفت- وګوره پښتونګلوی-

پښته:(پښ-ته)اسم- مؤنث- (۱)ډېره وچه زمکه- (۲)د انګورو د تاکو پښتې- د پالېزه پښتې- هغه زمکه چې د انګورو پۀ باغ او يا د پالېزه د وجود پۀ منځ کښې واقع وی- جمع پښتې-

پښتې:(پښ-تې)اسم- جمع- مذکر- چونډه- چونډکه- د ښځو هغه وېښتۀ چې د څړی پۀ شان وی-

پښتې:(پښ-تې)اسم- دريافت- امتحان- باز پرسی-

پښتېدل:(پښ-تې-دَل)لازمی/متعدی مصدر- پښتنه کول- تحقيق کول- سوال کول- پښتل- د څۀ امر پۀ باره کښې لۀ چا تحقيق کول-

پښتېدلے:(پښ-تې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پښتېدلی- مؤنث پښتېدلې- وګوره پښتېدل-

پښتېدنه:(پښ-تې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګوره پښتېدل-

پښتېدۀ:(پښ-تې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګوره پښتېدل-

پښتې:(پښ-تې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)اړخ- (۲)پړه-

پښتې:(پښ-تې)اسم- جمع- مؤنث- هغه هډوکی چې د سينې پنجره يې جوړه کړې ده-

پښتې:(پښ-تې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)پښته- وقايه- کايه- کانټې- (۲)د ځنګ بالښت- تکيه- (افغانستان)-

پښکے:(پښ-کے)اسم صوت- د مار، بنی، هوا او يا د داسې نورو ځيزونو اواز-

پښګيرت:(پښ-ګی-رَت)اسم- وګوره پښتوب-

پښګيری:(پښ-ګی-ری)اسم- وګوره پښتوب-

پُښلے:(پښۀ-لی)اسم- جمع- مؤنث- د څرمنې موزه- ماسی- هغه جرابې چې د څرمنې پوښ وراچولے شوے وی- (افغانستان)-

پښلے:(پ-ښ-لے)اسم- واحد- مذکر- پښولے- پېنزيب- جمع پښلې-

پښم:(پښم)اسم- پامال شوے- د پښو لاندې چخښی کړے شوے- چختاړ شوے- رسويلے شوے- سوريلے شوے- (افغانستان)-

پښمار:(پښ-مار)اسم- واحد- مذکر- دمګر- بنی وهونکے- د لومار بنی ته باد ورکونکے-

پښنځ:(پښنځ)اسم- پامال- رسويلے- چخښی کړے- (افغانستان)-

پښنختوب:(پښنخ-توب)اسم- پائمالی- پښنختيا- پښنخوالے- چخښی توب- (افغانستان)-

پښنختيا:(پښنخ-تيا)اسم- وګوره پښنختوب-

پښنخل:(پښن-خَل)مصدر- رسويل- پائمالول- پامالول- د پښو لاندې چخښی کول- (افغانستان)-

پښنخلے:(پښن-خۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پښنخلی- مؤنث

پښنځلې- وګورئ پښنځل-

پښنځن:(پښن-ځن)حاصلِ مصدر- وګورئ پښنځل-

پښنځنه:(پښن-ځهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پښنځل-

پښنځوالے:(پښنځ-وا-لے)اسم- وګورئ پښنختوب-

پښنځونکے:(پښن-ځ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پښنځونکي- مؤنث پښنځونکې- وګورئ پښنځول-

پښنځېدل:(پښن-ځې-دل)مصدرِ لازم- دَ زمکې سره اوارېدل- رسوېل- چخښې کېدل-

پښنځېدلے:(پښن-ځې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پښنځېدلي- مؤنث پښنځېدلې- وګورئ پښنځېدل-

پښنځېدن:(پښن-ځې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پښنځېدل-

پښنځېدنه:(پښن-ځې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پښنځېدل-

پښنځېدونکے:(پښن-ځې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پښنځېدونکي- مؤنث پښنځېدونکې- وګورئ پښنځېدل-

پښنځېدهٔ:(پښن-ځې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پښنځېدل-

پښند:(پښند)اسمِ صفت- (۱)پامال شوے- رسويلے شوے- چخښې کړے شوے- (۲)دَ وړې يا مالوچو پنړت شوې ګنجې- پاغنده-

پښندل:(پښن-دل)مصدرِ لازم- (۱)پامالول- پائمالول- وهل- (۲)وړې پهٔ لښته اشنل- اوشنل-

پښندلے:(پښن-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پښندلي- مؤنث پښندلې- وګورئ پښندل-

پښندن:(پښن-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ پښندل-

پښندنګ:(پښن-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پښندل-

پښندنه:(پښن-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- (۱)وګورئ پښندل- (۲)سخت وهل- رسوېل-

پښندول:(پښن-دَ-وَل)مصدرِ متعدی- پامالول-

پښندون:(پښن-دَ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پښندول-

پښندونکے:(پښن-دَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پښندونکي- مؤنث پښندونکې- وګورئ پښندول-

پښندونګ:(پښن-دَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پښندول-

پښندونه:(پښن-دَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پښندول-

پښندے:(پَ-ښن-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پښوندے- دَ پښو يو کالے- خولنه- (۲)ړوبک- هغه پړے چې دَ څناورو پښې پرې تړلے شي-

پښنګه:(پَ-ښن-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دوه ښابښې- دوه غابښې- ړيګور- هغه د لرګی دوه غابښې ستن چې دَ ونې دَ ښاخونو دَ پورته کولو دَ پاره ودرولے کېږي- (افغانستان)-

پښوکي:(پَ-ښو-کي)اسم- جمع- مؤنث- دَ پيټاؤو پهٔ رنګ يو قسم جرابې چې پنجې نهٔ لري- غړی-

پښول:(پُ-ښه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)دَ مار، غوا يا داسې بل څهٔ څناور نه دَ پښ پښ اواز اېستل- پرشول- (۲)دَ لوهار دَ بټې نه باد اېستل-

پښولے:(پَ-ښه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پښولي- مؤنث پښولې- وګورئ پښول-

پښون:(پَ-ښه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ پښول-

پښوندے:(پښ-ون-دے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پښندے- جمع پښوندي-

پښونکے:(پَ-ښه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پښونکي- مؤنث پښونکې- وګورئ پښول-

پښونګ:(پَ-ښه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پښول-

پښونه:(پَ-ښه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پښول-

پښويه:(پهٔ-ښو-يه)متعلق فعل- (۱)دَ "پهٔ" او "ښويه" مرکب- دَ "پهٔ اېخې" ضد- (۲)دَ قرآن کريم روانه لُستنه- (۳)ګرامر- صر و نحو- (افغانستان)-

پښه:(پښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ښپه- دَ بدن هغه حصه چې ګرځېدل پرې کېږي- (۲)دَ هر څيز دَ تکيې يا اړې لګولو حصه لکه دَ مېز پښه- (۳)دَ قبيلې يا خاندان يوه څانګه يا حصه- جمع پښې-

پښه:(پهٔ-ښه)اسم- واحد- مؤنث- اهنګره- اينګړه- دَ پښ مؤنث- جمع پښې-

پښه ارتون:(پښه-اَر-تون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پښه اَرته-

پښه ارته:(پښه-اَر-ته)اسم- واحد- مؤنث- پښې ارته- پښه ارتون- پښه ارتي- دَ پښتنو هغه دستور چې پکښې دَ چنغلې دَ کور لهٔ خوا دَ چنغول کور ته تحفه ځي-

پښه ارتي:(پښه-ار-تي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پښه ارته-

پښه بند:(پښه-بند)اسم- واحد- مذکر- دَ ښځو يو کالے چې غمی لري او پهٔ پښو کولے شي- عاميانه قرأت دَ پاره وګورئ خپه بند-

پښه سورے:(پښه-سو-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ پښتنو هغه دستور چې دَ وادهٔ دَ خلمی پهٔ دروازه کښې دَ ناوې دَ ننوتو نه اګاهو چرګ حلالولے شي- جمع پښه سوری- (افغانستان)-

پښه نيولے:(پښه-نی-وهٔ-لے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ماتل- ايسار- ساوے- پهٔ تلو تلو کښې رفتار کمونکے- (مرکب لفظ) (کېدل مصدر)-

پښه وندے:(پښه-ون-دے)اسم- واحد- مذکر- پښوندے- پلوابښه- هغه پړے چې څاروی پرې لهٔ پښو تړلے شي- جمع پښه وندی-

پښه يبل:(پښه-يه-بل)اسمِ صفت- پښې يبلې- پښې لوڅے- يبلې پښې- بې پېزاره- پښې ابله- پهٔ پښو پېزار نهٔ لرونکے-

پښهار:(پَ-ښ-هار)اسم صوت- (۱)دَ مار يا باد دَ پښ پښ اواز- (۲)دَ خفه مرې نه وتے اواز-

پښهارے:(پهٔ-ښهٔ-ها-رے)اسم صوت- وګورئ پښهار-

پښين:(پِ-ښين)اسم- واحد- مذکر- وختی نماسپښين-

پښې ابله:(پښې-اَب-له)اسمِ صفت- وګورئ پښه يبل-

پښې لوغ:(پښې-لوغ)اسمِ صفت- وګورئ پښې يبل-

پښېدل:(پَ-ښې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)دَ مار پښ پښ کول- (۲)مخې ته راتلل- دَ څۀ کار پېښېدل-

پښېدلے:(پَ-ښې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پښېدلی- مؤنث پښېدلې- وګورئ پښېدل-

پښېدن:(پَ-ښې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېدل-

پښېدنګ:(پَ-ښې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېدل-

پښېدنه:(پَ-ښې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېدل-

پښېدونکے:(پَ-ښې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پښېدونکی- مؤنث پښېدونکې- وګورئ پښېدل-

پښېدۀ:(پَ-ښې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېدل-

پښېمان:(پَښې-مانَ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)پۀ شوی کار افسوس کونکے- (۲)پۀ یو نۀ شوی کار دَ کولو ارمان لرونکے- پښېمانه- شرمنده- ملامته- افسوس او پښېمانی کونکے- لېپخور-

پښېمان توب:(پَښې-مانَ-توبَ)اسم- پښېمانتیا- ندامت- لېپخورتوب- لېپخوری-

پښېمانتیا:(پَښې-مانَ-تَیا)اسم- وګورئ پښېمان توب-

پښېمانول:(پَښې-ما-نَ-وَل)مصدر- لۀ "پښېمان" مصدرِ متعدی- (۱)نادم کول- لېپخورول- (۲)دَ کړی لوظ نه اړول-

پښېمانونکے:(پَښې-ما-نَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پښېمانونکی- مؤنث پښېمانونکې- وګورئ پښېمانول-

پښېمانونه:(پَښې-ما-نَ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېمانول-

پښېمانه:(پَښې-ما-نه)اسمِ صفت- وګورئ پښېمان-

پښېمانی:(پَښې-ما-نی)اسم- وګورئ پښېمانتوب-

پښېمانېدل:(پَښې-ما-نې-دَل)مصدر- دَ "پښېمان" مصدرِ لازم- (۱)نادم کېدل- لېپخورېدل- (۲)دَ خپلې وعدې نه اوړېدل-

پښېمانېدن:(پَښې-ما-نې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېمانېدل-

پښېمانېدنګ:(پَښې-ما-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېمانېدل-

پښېمانېدنه:(پَښې-ما-نې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پښېمانېدل-

پښېمانېدونکے:(پَښې-ما-نې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پښېمانېدونکی- مؤنث پښېمانېدونکې- وګورئ پښېمانېدل-

پښېمانېدۀ:(پَښې-ما-نې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پښېمانېدل-

پُښی:(پُ-ښی)اسم- واحد- مؤنث- څوکری- تریو خوند لرونکے یو قسم ساګ چې فارسی کښې ورته رواش وائی-

پښے:(پَ-ښے)اسم- واحد- مذکر- دَ توپک دَ نالی دَ صفا کولو مزے- پترو- پلترو- مروړه- مرړی- کته کش- جمع پښی-

پعذابول:(پا-ذا-بَ-وَل)مصدرِ متعدی- کړول- خوړول- تکلیف ورکول-

پعذابون:(پا-ذا-بَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پعذابول-

پعذابونکے:(پا-ذا-بَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پعذابونکی- مؤنث پعذابونکې- وګورئ پعذابول-

پعذابونګ:(پا-ذا-بَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پعذابول-

پعذابونه:(پا-ذا-بَ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پعذابول-

پعذابېدل:(پا-ذا-بې-دَل)مصدرِ لازم- کړېدل- خوربدل- تکلیف رسېدل-

پعذابېدن:(پا-ذا-بې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پعذابېدل-

پعذابېدنګ:(پا-ذا-بې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پعذابېدل-

پعذابېدنه:(پا-ذا-بې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پعذابېدل-

پعذابېدونکے:(پا-ذا-بې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پعذابېدونکی- مؤنث پعذابېدونکې- وګورئ پعذابېدل-

پعذابېدۀ:(پا-ذا-بې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پعذابېدل-

پغنه:(پَغ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پۀ کُدالی، چوټک یا یوم باندې دَ زمکې دَ نرمولو کار- (افغانستان)-

پف:(پُف)اسمِ صوت- دَ پوکی اواز- دَ دم کولو دَ پاره دَ پوکی اواز-

پف:(پُف)کلمه- ورک شه- دَ افسوس کلمه- کله کله دَ څۀ څیز دَ زیاتوالی پۀ وخت هم وئیلے شي- خصوصاً دَ ګرمۍ دَ زیاتوالی پۀ وخت کښې-

پقیر:(پَ-قیرَ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- پکیر- فقیر- سوال ګرے- خېر غُښتونکے- سائل- (۲)غریب- خوار- محتاج- (۲)امسے- دَ بل پۀ کالۀ کښې دَ خدمت پۀ عوض وسېدونکے-

پقیرتوب:(پَ-قیرَ-توبَ)اسم- دَ پقیر کېدو حالت-

پقیرنامه:(پَ-قیرَ-نا-مه)اسم- (۱)دَ بل چا پۀ مینه کښې دَ خدمت پۀ عوض دَ وُسېدونکیو کورونه- (۲)دَ داسې وُسېدونکیو دَ پېژندګلو دَ پاره وضع شوے یو ټکے-

پقیری:(پَ-قی-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پقیرتوب-

پک:(پَک)اسم- واحد- مذکر- قسمت- اتفاق- تقدیر-

پک:(پک)اسمِ صفت- (۱)پمن- پخن- پون- (۲)ګنجے- څموڅے- مؤنث پکه- جمع مؤنث پکې-

پک:(پَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کشتی چپو- سنګاوڼ- (۲)پوک- (۳)موقع- هغه اوړۀ شوے څیز چې لۀ تلی پۀ خلۀ کښې اچولے شي- جمع پکونه-

پک:(پَک)اسم- واحد- مذکر- بوک- دَ بېړۍ یا سېښتې یو طرف چې مخالف طرف ته يُ چوک وائی- (۲)وار- پېر- نوبت- (افغانستان)- مؤنث پکه- جمع مؤنث پکې-

پک:(پک)اسمِ صفت- وګورئ پکړ ۱-

پکار:(پَ-کارَ)اسمِ صفت- (۱)پۀ ښه راتلونکے- (۲)پۀ ضرورت راتلونکے- (۳)پسندیده- غوره- باندۀ- (۴)فائده من- ګټه ور-

پکار:(پَ-کارَ)اسم- واحد- مذکر- پوکے ورکونه- پوکنه-

پکارول:(پَ-کا-رَ-وَل)مصدرِ متعدی- پۀ کار راوړل- پۀ کار راوستل-

زبر"(خَ-بۀ-ره)، "زورکے"(شَل)، "پېش"(نُو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ۀ"(زَ-ړۀ)، "ۀ"(ېو-بې-دۀ)

استعمالول- خرڅ کول-

پکاروُلے:(پَ-کا-رَ-وُ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پکارولي- مؤنث پکارولې- وګورئ پکارول-

پکارون:(پَ-کا-رَ-وُن)حاصلِ مصدر- وګورئ پکارول-

پکارونکے:(پَ-کا-رَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پکارونکي- مؤنث پکارونکې- وګورئ پکارول-

پکارونګ:(پَ-کا-رَ-وُنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پکارول-

پکارونه:(پَ-کا-رَ-وُ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پکارول-

پکارېدل:(پَ-کا-رې-دَل)مصدرِ لازم- پکار کېدل- پکار راتلل-

پکارېدن:(پَ-کا-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پکارېدل-

پکارېدنګ:(پَ-کا-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پکارېدل-

پکارېدنه:(پَ-کا-رې-دُ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پکارېدل-

پکارېدونکے:(پَ-کا-رې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پکارېدونکي- مؤنث پکارېدونکې- وګورئ پکارېدل-

پکارېدهٔ:(پَ-کا-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ پکارېدل-

پکټ:(پِ-کَټ)اسم- واحد- مذکر- پیکټ- سنګر- دَ فوځ، بارېر یا ملېشې څوکۍ- محفوظه مورچه- جمع پکټونه- (م- انګریزي)-

پکټنګ:(پک-ټنګ)اسم- واحد- مذکر- احتجاجي اجتماع یا انفرادي احتجاجي عمل- (یوه سیاسي اصطلاح)- (م- انګریزي)-

پکچر:(پِک-چَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)تصویر- (۲)سنیم- بانسکوپ- ننداره- فلم- (م- انګریزي)-

پکر:(پُکَر)اسم- مذکر- فقر- غریبي- سوال- چړ- درویزه- ګدائي- خواري- مفلسي-

پکر:(پِ-کَر)اسم- واحد- مذکر- پیکر- فکر- سوچ- پام- غور- ري- چُرت- جاج- چورت- خیال- توجه-

پکر:(پهٔ-کَر)اسم- واحد- مذکر- مقابله- ډغره- ټکره- (افغانستان)-

پکرول:(پهٔ-کَ-رهٔ-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)ګرول- نوکارې لګول- ګروشېل- (۲)قهرول- پارول- کټول- راغزول-

پکرولے:(پهٔ-کَ-رهٔ-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پکرولي- مؤنث پکرولې- وګورئ پکرول-

پکرون:(پهٔ-کَ-رهٔ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پکرول-

پکرونکے:(پهٔ-کَ-رهٔ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پکرونکي- مؤنث پکرونکې- وګورئ پکرول-

پکرونګ:(پهٔ-کَ-رهٔ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پکرول-

پکرونه:(پهٔ-کَ-رهٔ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پکرول-

پکرېدل:(پهٔ-کَ-رې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)ګرېدل- ګروشېدل- (۲)پارېدل- قهرېدل-

پکرېدلے:(پهٔ-کَ-رې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پکرېدلي- مؤنث پکرېدلې- وګورئ پکرېدل-

پکرېدن:(پهٔ-کَ-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پکرېدل-

پکرېدنګ:(پهٔ-کَ-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پکرېدل-

پکرېدنه:(پهٔ-کَ-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پکرېدل-

پکرېدونکے:(پهٔ-کَ-رې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پکرېدونکي- مؤنث پکرېدونکې- وګورئ پکرېدل-

پکرېدهٔ:(پهٔ-کَ-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پکرېدل-

پکړ:(پَ-کړ)اسمِ صفت- خوار- غریب- مسکین- پهٔ جېب کښې پېسه نهٔ لرونکے-

پکړ:(پَ-کړ)اسم- واحد- مذکر- دَ لمنځې لرګے- دَ ارچې لرګے- دَ نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ ارچه- جمع پکړان- (افغانستان)-

پکښې:(پهٔ-کښې)حرفِ جار- دننه- پهٔ مېنځ کښې- کښې- (۲- صفت)کُنې- کُنه ورکونکے-

پکل:(پَ-کَل)اسم- واحد- مذکر- چغ- پوزے- کېږ- پرده- انډېرے- (افغانستان)-

پکل:(پَ-کَل)مصدر- کپه اچول- تلے اچول- لپه اچول- پینل- ورغوے اچول- تلے وهل- دا ټول مصدرونه دَ مېده څیزونو دَ پاره استعمالېږي لکه ستوان پکل- دارو پکل وغېره)-

پکلے:(پَ-کهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پکلي- مؤنث پکلې- وګورئ پکل-

پکنک:(پِک-نک)اسم- واحد- مذکر- بانډاره- بنډاره- سوبت- دَ سېل سپاټې دَ پاره دَ یارانو دوستانو بهر ته تلنه او هلته اخلے پخلے کونه- PICNIC- مېله- (م- انګریزي)-

پکنه:(پَ-کهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پکل-

پکو:(پَ-کو)اسمِ صفت- زهیر- سرګردان- پرېشان- خفه- سرګردن- پهٔ بد حال- مضطرب-

پکوړ:(پُ-کوړ)اسم- واحد- مذکر- پکول- دَ یو خاص قسم ګرمه وړینه ټوپي- لهٔ پټې نه جوړه ټوپي- جمع پکوړونه-

پکوړه:(پ-کو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پیکوړه- دَ وېسنو، پیازو او مرچکې وغېره نه جوړ یو ترسکون غنډ شان یا بل شکل لرونکے څیز چې پهٔ تېلو یا غوړو کښې تلولے شي- جمع پکوړې-

پکول:(پَ-کول)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پکوړ(۱)- جمع پکولونه-

پکونکے:(پَ-کون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پکونکي- مؤنث پکونکې- وګورئ پکل-

پکوڼې:(پ-کو-ڼې)اسم- مؤنث- دَ طلاقېدو نه پس ته دوباره وادهٔ شوې ښځه- (افغانستان)-

پکووالے:(پَ-کو-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- پرېشاني- بدحالي- سرګرداني-

تنګېدنه- پهٔ عذابېدنه- اوترتوب- وګورئ پکو-

پکه:(پَ-که)اسم- واحد- مؤنث- ګپه- کپه- پوښۍ- پوړۍ- تلے- رش- پکی- پکے- مېده کړے څیز- هغه مېده کړی دارو چې دَ ګېډې دَ درد دَ پاره پکارولے شي-

پکه:(پهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- پوک- پک- کامبوړے- دَ جوارو مېده پروړه- پخه- پهه- (افغانستان)-

پکه:(پَ-که)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ "پک" مؤنث- پمنه- پونه- ګنجې- جمع پکې-

پکه باښه:(پَ-که-با-ښه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم باښه- کوکه باښه- (افغانستان)-

پکه پاپکې:(پَ-که-پا-پهٔ-کې)اسم- واحد- مؤنث- یو مشهور وابنهٔ چې ببخ ئې دَ کچالو پهٔ شان وی او خوړ وی- (افغانستان)-

پکه تیره:(پَ-که-تی-ره)اسم- واحد- مؤنث- پله تیره- دوړېدونکې تیره- رژېدونکې تیره- جمع پکې تیرې- (افغانستان)-

پکیر:(پَ-کیرَ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ پقیر- (عامیانه)- جمع پکیران- (م- فقیر فارسی)-

پکیرتوب:(پَ-کیرَ-توبَ)اسم- وګورئ پقیرتوب- (عامیانه)-

پکیری:(پَ-کی-ری)اسم- وګورئ پقیری- (عامیانه)-

پکېدل:(پَ-کې-دَل)مصدرِ لازم- پوک کېدل- پک کېدل- ګنجے کېدل- روټن کېدل-

پکېدن:(پَ-کې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پکېدل-

پکېدنګ:(پَ-کې-دَنګَ)حاصلِ مصدر- وګورئ پکېدل-

پکېدنه:(پَ-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پکېدل-

پکېدونکے:(پَ-کې-دُونَ-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پکېدونکی- مؤنث پکېدونکې- وګورئ پکېدل-

پکېدهٔ:(پَ-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پکېدل-

پکی:(پَ-کی)اسم- واحد- مؤنث- اړی- دَ یو جریب پهٔ اندازه دَ کر جوګه زمکه چې پهٔ منځ کښې ئې پُولې یا بریدونه نهٔ وی-

پکې:(پَ-کې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پکه (پکل)-

پکے:(پَ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پکه (پکل)-

پکے:(پَ-کے)اسم تصغیر- دَ پک اسم تصغیر- پوګ- پوک- پوګه- ګنجے- پمن-

پکے:(پَ-کے)اسم- واحد- مذکر- باد پکے- ببوزے- بوزے- جمع پکی- (م- هندی)-

پګ:(پګ)اسم- واحد- مذکر- غټه پګړی- لوئ پټکے- جمع پګونه-

پګ:(پګ)اسم- واحد- مذکر- پګه- منجیله- دَ منګی یا پنړ وړلو دَ پاره منجیلکی- جمع پګې-

پګاړه:(پَ-ګا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- اشر- بسکره- پګړه- دَ تفصیلی معنې دَ پاره وګورئ اشر-

پګاه:(پَ-ګاهٔ)اسم- سحر- سبا- سحر وختی- سحر سبا- (م- فارسی)-

پګړه:(پَ-ګَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پګاړه-

پګړی:(پګ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)غټ پټکے- دستار- پګ- پګه- لنګوټه- (۲)غیرت- همت- (۳)عزت-

پګن:(پَ-ګن)اسم- واحد- مذکر- دَ هندی کال یوولسمه میاشت- دَ فروری، مارچ میاشت- (م- هندی پهاګن)-

پګ ونړ:(پګ-ونړ)اسم- واحد- مذکر- دَ زمکی هر هغه وېش چې دَ نارینو پهٔ بنیاد کیږی- جمع پګ ونړونه-

پګه:(پَ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پګړی-

پل:(پَل)اسم صفت- بخښلے شوے- معاف-

پل:(پَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)قدم- ګام- (۲)دَ پښې نښه- منړه- (۳)دَ ژرندې یا مېچنې غنم برنے کانړے- پوړ- (۴)دَ کلال څرخ- جمع پلونه-

پل:(پَل)اسم- واحد- مذکر- لحظه- دَ سترګو رپ- یوه ګړی- کم وخت- لږه شېبه- (م- هندی)-

پل:(پَل)اسم صفت- جدا شوے- مستثنیٰ شوے- بېل شوے- مؤنث پله-

پل:(پَل)مهمل- دَ "خل" تابع مهمل-

پل:(پَل)اسم- واحد- مذکر- پال- فال- قسمت- (عامیانه)- جمع پلونه-

پل:(پَل)اسم- واحد- مذکر- څټوکے-

پل:(پَل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پول- پهٔ سیند یا نهر وغیره دَ پاسه جوړه شوې لار-

پلا:(پَ-لا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وار- ځل- وخت- موده- نوبت- دفعه- (۲)دوره- تګ- وخت- ګشت- سفر- (افغانستان)-

پلا:(پَ-لا)اسم صوت- غوایانو ته دَ یوې کولو پهٔ وخت دَ پولې نه دَ بچ کېدو یا تېز کار کولو اواز-

پلاټ:(پلاټَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سازش- (۲)پهٔ لنډه قصه کښې دَ واقعاتو زنځیر او دَ هغو خپلو کښې دَ تړلو اصول-(۲)دَ زمکې یوه مخصوصه جوړه کړے شوې ټوکره- جمع پلاټونه- (م- انګریزی)-

پلاټون:(پَ-لا-ټُونَ)اسم- واحد- مذکر- پلټون- دَ څلوېښتو پنځوسو کسانو فوځی دسته- (م- انګریزی)-

پلاټینم:(پلا-ټی-نم)اسم- واحد- مذکر- یو قیمتی دات چې اټمی شمېر ئې ۷۸ او علامت ئې Pt دے- (م- هسپانوی)-

پلاچه:(پَ-لا-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ څاروی دَ څټ غوښه- جمع پلاچې-

پلار:(پلارَ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ابا- جمع پلاران- (عام طور سره تحقیراً)- جمع پلرونه-

پلارتوب:(پلارَ-توبَ)اسم- پلارکېدنه- پلارولی- پلارګلوی- پلاروالے-

پلارخېل:(پلارَ-خېلَ)اسم- پلارګنی- دَ پلار لهٔ لوری خپلوان- پلرګنی- (افغانستان)-

پلارګلوی:(پلار-ګل-وی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلارتوب-
پلارګنی:(پلار-ګ-نی)اسم- مؤنث- پلارخېل- پلرنی- دَ پلار لهٔ خوا خپلوان- دَ ناوې دَ پلار کول- پلرګنی- دَ پلار خېلخانه-
پلارمړے:(پلار-مهٔ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- یتیم- بې پلاره- مؤنث پلارمړې-
پلاروالی:(پلار-وا-لی)اسم- وګورئ پلارتوب-
پلاروالے:(پلار-وا-لے)اسم- وګورئ پلارتوب-
پلارولی:(پلار-وَ-لی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلارتوب-
پلارینه:(پلا-ری-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلارګنی-
پلاز:(پلاز)اسم- (۱)تخت- دَ بادشاهانو دَ ناستې خاص ځاۓ- (۲)دَ ناوې او زلمې دَ پاره دَ وادهٔ پهٔ ورځ خاص جوړ شوے ځاۓ-
پلاس:(پ-لاس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پلاس پلے-
پلاس:(پ-لاس)اسم- واحد- مذکر- بوجۍ- ټاټ- غټ او شډل ټوکے- (م- فارسي)-
پلاس:(پ-لاس)اسم- واحد- مذکر- یو خاص قسم امبور-
پلاس پلے:(پ-لاس-پ-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ کبړی دَ چینجو دَ علاج دَ پاره پکاربېدونکے یو بوټے چې غنم شان تخم لری- (افغانستان)-
پلاسپر:(پ-لاس-پر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چالاک- ځان هوښیار ګڼونکے- (۲)پهٔ سوچونو کښې ډوب- (عامیانه)-
پلاستر:(پ-لاس-تر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پلستر- (م- انګریزی)-
پلاسټک:(پ-لاس-ټک)اسم- واحد- مذکر- مختلف شکلونه قبلونکے یو شے چې اوس اکثر مصنوعي وی او دَ کور لوښی لرګی او نور سامان ترې جوړیږی- (م- انګریزی، یونانی)-
پلاسټکی:(پ-لاس-ټهٔ-کی)اسم- دَ پلاسټک نه جوړ-
پلاسیخ:(پ-لا-سیخ)اسم صفت- نېغ- روغ-
پلاش:(پ-لاش)اسم- واحد- مذکر- فلاش- فلش- دَ تاش یوه لوبه چې جواری پرې کولے شی- (م- انګریزی)-
پلاشټک:(پ-لاش-ټک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پلاسټک-
پلاشی:(پ-لا-شی)اسم صفت- واحد- مذکر- پلاش کونکے- جمع پلاشیان-
پلال:(پ-لال)اسم- واحد- مذکر- (۱)غښتنه- طلب- تلاش- تجسس- (۲)ساتنه- حفاظت-
پلاله:(پ-لا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پروړه- دروزه- سواره- وابښهٔ- (۲)منډلی- درمندسرائی- پوال- پرال- (افغانستان)-
پلاله:(پ-لا-له)اسم- واحد- مؤنث- خوزاره- پلال ګېر پټے- مغه پټے چې غنم او اُربشې وربانديې کرلے شوی وی او بیا وربېلے شی- (افغانستان)-
پلالی:(پ-لا-لی)اسم صفت- جګړالو- جګړمار-
پلالېن:(پ-لا-لېن)اسم- واحد- مذکر- فلالېن- یو قسم نرمه وړینه کپړه- پولې لېن- (عامیانه)- (م- انګریزی فلېنل)-

پلالے:(پ-لا-لے)اسم صفت- (۱)غښتونکے- (۲)محافظ-
پلان:(پلان)اسم- واحد- مذکر- (۱)نقشه- خاکه- منصوبه- (۲)تجویز- جمع پلانونه- (م- انګریزی)-
پلان دسمان:(پلان-دس-مان)اسم- فلان دسمان- پلاند اسماند- پلانی دسمانی- پټ اندام- بدفعلی- (غالباً دَ دې توری اصل "فلان دسمان" دے- او "دسمان" دلته دَ "فلان" تابع مهمل دے- (م- عربی فلان)-
پلاند اسماند:(پلان-دس-ماند)اسم- وګورئ پلان دسمان- (عامیانه)-
پلانده:(پلان-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کبډی- کُشتی- پهلوانی- پرخوونې- (۲)جنګ- جنګړه- مجادله- مجاهده-
پلانکے:(پلان-کے)اسم ضمیر- (۱)پلانے- فلانے- دَ یو غېر معیّن څیز یا کس دَ پاره استعمالېدونکے ضمیر- مغه- دغه- دے- دَ انکسار پهٔ طور دَ متکلم لهٔ خوا دَ ځان دَ پاره هم استعمالیږی- (۲)پټ اندام-
پلاننګ:(پلان-ننګ/پلا-ننګ)اسم- مذکر- دَ کار کولو تجویز- منصوبه بندی- وګورئ پلان- (م- انګریزی)-
پلانے:(پلا-نے)اسم ضمیر- وګورئ پلانکے- جمع پلانی- مؤنث پلانۍ-
پلاڼ:(پ-لاڼ)اسم- واحد- مذکر- کته- وګورئ پالاڼ- جمع پلاڼونه-
پلاڼ:(پلاڼ)اسم صفت- مغه اُبهٔ چې دَ لرې ځاۓ نه پهٔ منګو یا مشکونو کښې راوړے شی-
پلاڼه:(پ-لا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- لوئ مشک چې دَ لرې نه پکښې اُبهٔ راوړلے شی- رابیا- دَ اُبو مشک- ژے- (افغانستان)-
پلاڼه:(پ-لا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- پلان- کته- ځل-
پلاڼه:(پ-لا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- بوساړه- دَ وښو دلۍ- درمند- دَ بوسو خرَه-
پلاؤ:(پ-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- پولاؤ- ګرمه مساله کښې پخې شوې نرۍ وریژې چې غوښه، چرګ، بل مارغهٔ، مټر، دال یا داسې نور څیزونه هم پکښې ګډولے شی- او لهٔ دم کولو نه پس خوړے شی-
پل پټ:(پل-پټ)اسم صفت- وګورئ پلپوټ ۲-
پل پټے:(پل-پهٔ-ټے)اسم- پل غلطونکے- پل ګرځونکے- مغه سړے چې غلهٔ ورته معلوم وی او پټ یُ کړی- (افغانستان)-
پلپل:(پل-پل)اسم- واحد- مذکر- تور مرچ- فلفل- تور ترخه- (م- عربی)-
پلپل پاڼې:(پل-پل-پا-ڼې)اسم- جمع- مؤنث- دَ سپېدار دَ وُنې پاڼې-
پلپل پاڼے:(پل-پل-پا-ڼے)اسم- واحد- مذکر- دَ چنار یو قسم- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ سپېدار- (افغانستان)-
پل پلے:(پل-پهٔ-لے)اسم صفت- تور رنګ لرونکے- پنجابے- چواړے- بدرنګه- تورمخے-
پلپوټ:(پل-پوټ)اسم- واحد- مذکر- تلاش- لټون- غښتنه- (افغانستان)-
پلپوټ:(پل-پوټ)اسم- (۱)پرده اچونه- پټونه- لهٔ نظره ګوښه کونه- عېب پټونه- (۲)اړونه- ګرځونه- (۳)اغستنه- (۴)ګډوډونه- (افغانستان)-

ۍ" (ځی-ژل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پلپوټ:(پل-پوټ)اسم صفت- پټ- مخفي- پل پټ- (افغانستان)-

پلپولک:(پُل-پو-لک)اسم- واحد- مذکر- پولپولک- يو خودرو بوټے چې دَ پاڼې پېڅ يې لاس پولې کوي-

پلپيټ:(پل-پيټ)اسم- وګورئ پلپوڼ ۳-

پلپېټ ژن:(پَل-پېټ-ژَن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- ناقلاره- ناقراره- پلټمن- اشوراند- بې ارامه- پلټنه- پلټن-

پلت:(پَ-لَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)يوه ټوټه زمکه- لږه زمکه- (۲)نقشه- مسوده- طرحه- (۳)نظريه- خيال- فرضيه- (افغانستان)-

پلت:(پَ-لَت)اسم- واحد- مذکر- پرلتې- پلتې- پرلت-

پلت باز:(پَ-لت-بازْ)اسم صفت- چالاک- فريبي-

پلترو:(پل-ترُو)اسم- واحد- مذکر- پترو- هغه مزے چې دَ ټوپک شپېلۍ پرې صفا کولے شي- جمع پلتروګان- (م- انګريزي پُل تهرو)-

پلترۍ:(پُ-لت-رِي)اسم- واحد- مؤنث- دَ زنانو دَ غوږونو پسول- والۍ- لښتي- مُندرۍ- پړيړې-

پلترۍ:(پَ-لَت-رِي)اسم- واحد/جمع- مؤنث پرلت- پلتې- پلتنې- پرلتې-

پلتند:(پَ-لَ-تند)اسم صفت- بې تابه- ناقراره- ناارامه- (افغانستان)-

پلته:(پل-ته)اسم- واحد- مؤنث- پپلته- پلپته- دَ پيوې وټ چې دَ مالوچو نه جوړ وي- (م- فليته)-

پلته:(پَل-ته)اسم- واحد- مؤنث- پۀ کاغذ يا پلاسټک کښې دَ څيزونو را جمع کړے شوے شمېر لکه دَ ستنو پلته، دَ تيلو پلته، دَ ګولو پلته وغېره-

پلتې:(پَ-لَ-تې)اسم- واحد- مؤنث- پرلت-

پلتې:(پَ-لَ-تې)اسم- واحد/جمع- مونث- پرلتې- پرلت- لغتې- پرتل-

پلټس:(پل-ټس)اسم- واحد- مذکر- دَ نرمو دارو لکه لېټې وغېره هغه پټۍ چې لۀ کپړې جوړه وي او پۀ زخمونو يا دانو لګولے شي- (م- انګريزي)-

پلټل:(پلَه-ټَل)مصدر متعدي- څېړنه کول- اړول راړول- لټول- تحقيق کول- تلاش کول- کتل- مطالعه کول-

پلټلے:(پله-ټۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پلټلي- مؤنث پلټلې- وګورئ پلټل-

پلټمن:(پَ-لَټ-مَن)اسم صفت- مذکر- ناقلاره- دَ بيمارۍ پۀ وجه بې ارامه- بې قراره- ناقراره- (افغانستان)-

پلټن:(پَل-ټَن)اسم- واحد- مؤنث- پلټنه- فوځ- عسکر- فوج- دَ فوځ يوه حصه- دَ فوځ هغه ټولے چې شمېر يې دَ اووۀ سوؤ او زرو تر منځه وي-

پلټن:(پله-ټن)حاصل مصدر- وګورئ پلټل-

پلټن:(پل-ټن)اسم صفت- وګورئ پلپېټ ژن-

پلټنډ:(پَل-ټَنډ)اسم صفت- پلټنډے- پلټمن- پلټن- پلپېټ ژن- ناقلاره- بې ارامه- دَ بيمارۍ پۀ وجه بې ارامه-

پلټنه:(پله-ټۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پلټل-

پلټنه:(پَل-ټۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پرټنه- دَ فوځيانو جته- پلاټون- دَ سپايانو يوه خاصه جته- پلټن- جمع پلټنې- (م- انګريزي)-

پلټنی:(پَل-ټۀ-نی)اسم- مذکر- سپاهي- عسکر-

پلټنه:(پَل-ټۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلټنه- جمع پلټنې-

پلټول:(پله-ټ-وَل)مصدر متعدي- وګورئ پلټل-

پلټون:(پله-ټه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پلټل-

پلټون:(پله-ټُون)اسم- پلټنه- تلاش- تحقيق-

پلټون:(پل-ټُون)اسم- واحد- مذکر- پلاټون- پلټن- پلټنه- (م- انګريزي)-

پلټونکے:(پلَه-ټ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پلټونکي- مؤنث پلټونکې- وګورئ پلټول-

پلچک:(پل-چک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېروته-

پُلچک:(پُل-چَک)اسم تصغير- پولکے- پول چک- پۀ وله يا لښتي باندې جوړ وړوکے پول- جمع پلچکونه-

پلځ:(پۀ-لځ)اسم صفت- ببر وېښتۀ- ګڼ وېښتۀ- پړېر وېښتۀ- لوې وېښتۀ- ګور وېښتۀ- پلځ-

پلځکے:(پ-لځ-کے)اسم- واحد- مذکر- پېځکے- پځکے- پيلځکے-

پلځۀ:(په-لۀ-ځۀ)اسم- صفت- پلځ- ګڼ وېښتۀ- جمع پلځې-

پلځې:(پۀ-لۀ-ځې)اسم صفت- دَ بزې يا داسې بل کوم ځناور وړۀ وېښتۀ- لوې لوې او بې نظمه وېښتۀ-

پلځور:(پله-ځې-ور)اسم صفت- ببر وېښتۀ لرونکے مال- (افغانستان)-

پلرګنۍ:(پلَر-ګ-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پلارګنۍ-

پلرنے:(پله-ر-نے)اسم صفت- دَ پلار پسې ترلے- دَ پلار-

پلرولي:(پلَر-و-لي)اسم- پلارولي- وګورئ پلارتوب-

پلستر:(پَ-لس-تَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)پلاستر- پلاسټر- دَ سيمټو يا چونې لېو- (۲)پۀ مات ځاځ تړلې شوې يوه خاص قسم پټۍ چې چونه پکښې شامله وي- جمع پلسترونه-

پلسترې:(پَ-لس-تۀ-رې)اسم صفت- دَ عمارتونو دَ پلستر کار کونکے- پلستر سره منسوب- جمع پلستريان-

پلسترۍ:(پلَس-تَ-رې)اسم- واحد- مؤنث- جُرابه- جُرابه- جورابه-

پلستي:(پَ-لس-تي)اسم- جمع- مذکر- خلمي- خوانان- ملکان-

پلستے:(پَ-لس-تے)اسم- واحد- مذکر- خلمے- دَ پلستي واحد-

پلسيخ:(پل-سيخ)اسم صفت- نېغ- سيخ- عمودي- قائم-

پلشت:(پَ-لَشت)اسم صفت- ګنده- سخا- ناصفا- مؤنث پلشته-

پلشته:(پَ-لش-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ پلشت مؤنث- بدچلنه ښځه- ګشتۍ- بدعمله ښځه- پليته- رنډۍ- بدکاره- بدفعله- کچنۍ- کنچنۍ-

پل صراط:(پَ-ل-صَ-راط)اسم- واحد- مذکر- لۀ تورې تېرۀ او لۀ وېښتۀ نرے هغه پُل چې دَ قيامت پۀ ورځ به پرې نېکان تيرېږي-

پلغاښه:(پل-غا-ښه)اسم- واحد- مؤنث- هغه غُټه يا ګنډه چې ژر خلاصېږي- سسته غُټه- جمع پلغاښې-

زبر"(خ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ۀ"(ز-ره)، "ۀ"(پو-ښې-دۀ)

پلغت:(پَل-غَت)اسم صفت- ناڅاپي- فوري- يکدم- ناڅاپه- ناګهانه-

پلغټ:(پَل-غَټ)اسم- صفت- (۱)تېز قدم اخستونکے- چابک- چاق- ګړندے- په منډه (۲- اسم)تېز تلنه- چاخ تګ- وندی توب- (۳)سر پهٔ څنګه- سر پهٔ ککری اوښتنه- (افغانستان)-

پلغټي:(پل-غَ-ټي)اسم- واحد- مؤنث- ګړندے والے- تېزي- وندیتوب- چالاکي- (افغانستان)-

پل غلت:(پَل-غَ-لَت)اسم صفت- ټګ- منافق- بدچلنده- دوه مخے- ګمراه- هغه څوک چې غلط قدم وړی- بې لاري- بدګوزاره- (افغانستان)-

پلک:(پَلَکْ)اسم- واحد- مذکر- دَ لوهارانو دَ استعمال دَ پاره دَ اُسپنې غټ څټک- جمع پلکونه-

پلک:(پ-لَک)اسم- واحد- مؤنث- دَ سترګې برنۍ پرده- (م- فارسی)-

پلک:(پَلَکْ)تابع مهمل- دَ کلک سره استعمالیږی لکه کلک پلک- مستقله معنیٰ نهٔ لري-

پلکار:(پُل-کار)اسم- واحد- مذکر- پرکار- قطب نما- قبله نما- پلکار- دَ زمکې یا کاغذ دَ مېچ کولو او کرښې جوړولو آله-

پلکش:(پَل-کَش)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بېلچه- جمع پلکشونه-

پلکه:(پَل-که)اسم- واحد- مذکر- پلک- غټ څټک-

پلکه:(پَل-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ ښوینده څیز پهٔ زمکه دَ تېرېدو پاتې نښه- لکه دَ مار دَ تګ یا ښوئېدو نښه- جمع پلکې-

پلکه:(پل-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړوکے مېخ- پنکے- (۲)بنیاد- وېخ- بېخ- ولې- سټه- ریښه- بنسټ- (۳)دَ مویخ یا کشمش پېزوان- دَ وګکې پهٔ وېخ کښې خاشه- (افغانستان)-

پلکی:(پل-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ سپار دَ ټېنګولو اُسپنه-

پلکے:(پل-کے)اسم- واحد- مذکر- ورسره- مل- ملګرے- هغه شے چې دَ بل شی سره ولګولے یا یو ځای کړے شي-

پلکے:(پل-کے)اسم- واحد- مذکر- لاسکے- لاستے- دسته- جمع پلکي-

پلګ:(پَلَګْ)اسم- واحد- مذکر- دَ بجلۍ دَ استعمال یوه پُرزه چې پکښې "شُو" دننه کیږی- (م- انګریزی)-

پلګواښه:(پَل-ګوا-ښه)اسم- واحد- مؤنث- غوړاشه- پلواښه- غوړېښه- کاج- دَ خلکې دَ غوټې حلقه چې دَ مزی نه جوړه وی-

پلګواښهٔ:(پَل-ګوا-ښهٔ)اسم- واحد- مؤنث- وګوریٔ پلګواښه-

پلګی:(پل-ګی)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- وړه دره-

پلم:(پَ-لَم)اسم- واحد- مذکر- کواړه- هغه غُنډه کړی چې دَ ګل زیری نه تاؤ وی-

پلم:(پَ-لَم)اسم- واحد- مذکر- دَ الوچې پهٔ شان یوه مېوه- جمع پلمونه-

پلمن:(پل-مَن)اسم- واحد- مذکر- پلوسه- یوه وُنه چې دَ څانګو او جرو نه ئ مسواک جوړیږی- پلین- پلېنه- پلوان- پلېمن- پلېمه- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګوریٔ پلوسه-

پلمه:(پل-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)عُذر- بانه- دوکه- مکر- حیله- فرېب- ټګی- جمع پلمې- (۲)دروغ- تهمت-

پلمه ګیر:(پَل-مه-ګیر)اسم صفت- بانه ساز- بهانه جوړونکے-

پلمېټ:(پل-مېټ)اسم- واحد- مذکر- پېپرمنټ- خوږه خُله پخونکې یو قسم ګولی- (م- انګریزی)-

پلن:(پَلَن)اسم صفت- (۱)پسورور- ارت بیرت- چې پسورېٔ لوئ وی- بر لرونکے- (۲)غټ پټ- څُرب- (۳)اوار- هموار- مسطح-

پلن پانے:(پَلَن-پا-نے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم چینجے- جمع پلن پاني- (افغانستان)-

پلن پانے:(پَلَن-پا-نے)اسم- کوېی- کرم- چې پاڼې ئ پلنې وی- (ګلداره کرم)- (افغانستان)-

پلن پزے:(پَلَن-پهٔ-زے)اسم صفت- دَ پلنې پوزې لرونکے- مؤنث پلن پزې-

پلن تنے:(پَلَن-تَ-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ تناسلی الت سر- دَ ذکر سر- جمع پلن تنی-

پلنتوب:(پَلَن-توب)اسم- پسورورتوب- پلنوالے- پلنتیا-

پلنتیا:(پَلَن-تَیا)اسم- وګوریٔ پلنتوب-

پلندر:(پَلَن-دَر)اسم- واحد- مذکر- پېندر- پرندر- بخنے پلار- جمع پلندران-

پلنده:(پَ-لن-ده)اسم- واحد- مونث- دَ کاغذونو ګاټلی- جمع پلندې-

پلندی:(پَ-لَن-دی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دلدل- بوخته- جبه- (۲)مکر- فرېب- ټګی- چل- دوکه-

پلنډه:(پَلَن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پنډ- پنډه- پېټے- ګېډے- وځکے- وځه- بوج- (۲)دَ اسباب غټه- جمع پلنډې-

پلنډی:(پَلَن-ډی)اسم صفت- پنډ وړونکے- پانډی- پېټے وړونکے- پنډی- پهٔ مزدوری پېټے وُچتونکے-

پلن سرے:(پَلَن-سَ-رے)اسم صفت- ساده- بې عقله- ناپوېه- کم عقل- جمع پلن سری-

پلن سرے:(پَلَن-سَ-رے)اسم- واحد- مذکر- پوړه- راشپېل- پارو- پنسری- خوی- بیم-

پلنګ:(پَ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- پړانګ- یو څیرونکے څناور- (م- فارسی)- سائنسی نوم ڤینتېرا پړپس- (PANTHERA PARDUS)-

پلنګ:(پَ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- پالنګ- دَ نوارو کټ- لوئ کټ- چپرکټ-

پلنګ پوښ:(پَ-لَنګ-پوښ)اسم- واحد- مذکر- سوزنی- دَ کټ څادر چې ګلدار وی-

پلنګ کوټے:(پَ-لَنګ-کو-ټے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وړوکے پالنګ-

پلنوالے:(پَلَن-وا-لے)اسم- وګوریٔ پلنتوب-

پلنول:(پَلهٔ-نَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)ارتول- خوروَل- ویروَل- اوارول- (۲)پهٔ زمکه راغړځول او وهل ټکول- دربله کول-

پلنون:(پَلهٔ-نَ-وَن)حاصل مصدر- وګوریٔ پلنول-

ی" (څی-رل)، ئ"(هې-ره-وَل)، ے"(تن-دے)، ی"(پېیا-لی)، تفصیل دَ پاره وګوریٔ تشریحات صفحه ۱

پلنونکے:(پَلۀ-نَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پلنونکي- مؤنث پلنونکې- وګورئ پلنول-

پلنونګ:(پَلۀ-نَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پلنول-

پلنونه:(پَلۀ-نَ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پلنول-

پلني:(پل-ني)اسم- مذکر- کالګير- هغه پلنه او هواره تخته چې موچيان يې دَ څپلو جوړولو پۀ وخت دَ زنګون لاندې نيسي- (افغانستان)-

پلنېدل:(پَلۀ-نې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)ويرېدل- اوارېدل- ارتېدل- پۀ زمکه غزېدل- وهلے کېدل- (۲)مضبوطېدل- ځرېبدل- تيارېدل- (۳)مټه کېدل- شله کېدل- خرے کېدل-

پلنېدن:(پَلۀ-نې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پلنېدل-

پلنېدنګ:(پَلۀ-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پلنېدل-

پلنېدنه:(پَلۀ-نې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پلنېدل-

پلنېدونکے:(پَلۀ-نې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پلنېدونکي- مؤنث پلنېدونکې- وګورئ پلنېدل-

پلنېدۀ:(پَلۀ-نې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پلنېدل-

پلو:(پَ-لَو)اسم- واحد- مذکر- (۱)پيڅکه- پيڅکے- پيڅه- (۲)طرف- لورے- څنګ- اړخ- پېره- (۳)طرفداری- ننګه- لنګه- (۴)دَ "پلاو" يو قرأت-

پلو:(پَ-لو)اسم- واحد- مذکر- پلے- زړے- زنے-

پلو:(پَ-لَو)اسم- واحد- مذکر- دَ يو بوټي نوم- وګورئ پيلو-

پلواري:(پَل-وا-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلواړې-

پلواري:(پل-وا-ري)اسم- دَ ګلونو باغچه- باغيچه- (م- مندی)-

پلواړې:(پَل-وا-ړې)اسم- واحد- مؤنث- پلواري- ګلِ نسرين- دَ سپين ګلاب ګل-

پل واښه:(پَل-وا-ښه)اسم- واحد- مؤنث- بټن- تنی- ګټمه- غروندے-

پل واښۀ:(پل-وا-ښۀ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پلوښۀ- پلکواښۀ- غراشه- کړی- غنهياسه- چپراس- سسته غټه- لۀ مزی جوړ دَ ښځې سورے- (۲)بنياد- خېل- خاندان- (۳)زنځير- خولنه- پېکړه- لۀ مېزری جوړه هغه پېکړه چې څناورو ته پښو کښې اچولے شي- جمع پلواښې-

پلوالے:(پل-وا-لے)اسم- معافي- بخښنه- عفو- بخشش-

پلوان:(پَل-وان)اسم- وګورئ پلمن-

پلوځکی:(پَلوځ-کی)اسم- جمع- مؤنث- دَ کډو يا څپلو هغه وچې پچې چې دَ پښو وېښتو يا لم پورې يې ځانګې- پېخاړې- مېخاړې- مښاوې- بخاڼې-

پلوڅه:(پَ-لو-څه)اسم- واحد- مؤنث- يوه ازغی لرونکې ونه- ژرګه- بلنځه- نباتاتي نوم اکيشيا موډسټه (ACACIA MODESTA)-

پلود:(پَلود)اسم- دَ "پلودل" مصدر اسم- وګورئ پلودل-

پلودل:(پَلو-دَل)مصدرِ متعدی- ناپ کول- اندازه اخستل- مېچ کول-

پلودلے:(پَلو-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پلودلي- مؤنث پلودلې- وګورئ پلودل-

پلودن:(پَلو-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پلودل-

پلودنګ:(پَلو-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پلودل-

پلودنه:(پَلو-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پلودل-

پلودونکے:(پَلو-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پلودونکي- مؤنث پلودونکې- وګورئ پلودل-

پلور:(پَلور)اسم- واحد- مذکر- (۱)بيه- قيمت- ارزښت- سر- بها- (۲)خرڅلاؤ- (۳)ادل بدل- (۴)ورکړه راکړه-

پلورل:(پَلو-رَل)مصدرِ متعدی- خرڅول-

پلورلے:(پَلو-رۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پلورلي- مؤنث پلورلې- وګورئ پلورل-

پلورن:(پَلو-رَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پلورل-

پلورنګ:(پَلو-رَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پلورل-

پلورنه:(پَلو-رۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پلورل-

پلورونکے:(پَلو-رُون-کے))اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پلورونکي- مؤنث پلورونکې- وګورئ پلورل-

پلورينه:(پَلو-ري-نه)حاصلِ مصدر- پلورنه- خرڅونه-

پلورے:(پَلو-رے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- سوداګر- تاجر- تجار-

پلوړه:(پَلو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَرشل- دورشل-

پلوسه:(پَ-لو-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلوڅه- جمع پلوسې-

پلوشه:(پَل-وَ-شه)اسم- واحد- مؤنث- هغه نرې کرښه چې دَ رڼا لۀ رفتاره پېدا کيږي او پکښې نرې نرې ذرې پۀ ګډېدو ښکاري- ځړيکه- ځيره- تجلّي- وړانګه- شُعله- جمع پلوشې-

پلوښۀ:(پَل-وَ-ښۀ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلواښۀ-

پلوغاړې:(په-لو-غا-ړې)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- وښنده- پېغلتوب ته نژدې جينۍ-

پلوغټه:(پَ-لو-غَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)رشته- تعلق- خپلولي- (۲)دَ وادۀ، سنت يا دَ خوئ دَ پېداوښت پۀ خوشحالۍ راغليو خپلوانو ته دَ واپس تللو پۀ وخت ورکېدونکې ډالۍ- (۳)هغه ډالۍ چې څنغول يې خپلې چنغلې ته پۀ اول ملاقات ورکوي- (۴)هغه نغدې روپۍ چې دَ خپلوانو لۀ خوا وادۀ کېدونکی جينۍ ته دَ وادۀ پۀ ورځ پۀ پلو پورې ورغوټه کولے شي- (افغانستان)-

پلول ۱:(په-له-وَل)مصدرِ متعدی- (دَ مشک يا غړکی وغيره) مښل- غړکه شاربل- (افغانستان)-

پلول ۲:(پَ-لَ-وَل)مصدرِ متعدی- زمکه پۀ ګامونو کول- قدم کول- کچ کول-

پلول ۳:(پۀ-لۀ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)معاف کول- بخښل- (۲)ټکول- خَصی کول- ټاپل-

پلولے:(پَ-له-وۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پلولي- مؤنث پلولې- وګورئ پلول-

وګورئ پلول ۲-

پلولے:(پهٔ-لهٔ-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع پلولی- مؤنث پلولې- وګورئ پلول ۳-

پلون:(پَ-له-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پلول ۲-

پلون:(پهٔ-لهٔ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پلول ۳-

پلوَن:(پَ-لوَ-وَن)اسم- واحد- مذکر- پېره خوږه مېوه لرونکې یوه غرنیزه ونه-

پلونډ:(پَل-وَنډ)اسم صفت- (۱)ځُرب- مضبوط- غټ پټ- چاغ- پهلوان- تیار- (۲)کم عقل- ساده- احمق- بې وقوف-

پلونډتوب:(پَل-وَنډ-توب)اسم- (۱)پلونډتیا- غټ والے- مضبوطیا- (۲)کم عقلتوب-

پلونډتیا:(پَل-وَنډ-تیا)اسم- وګورئ پلونډتوب-

پلونکے:(پَ-له-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پلونکی- مؤنث پلونکې- وګورئ پلول ۲-

پلونکے:(پهٔ-لهٔ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پلونکی- مؤنث پلونکې- وګورئ پلول ۳-

پلونګ:(پَ-له-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پلول ۲-

پلونګ:(پهٔ-لهٔ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پلول ۳-

پلونول:(پَلو-نَ-وَل)مصدرِ متعدی- وګورئ پلنول-

پلونه:(پَ-له-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پلول ۲-

پلونه:(پهٔ-لهٔ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پلول ۳-

پلوون:(پَ-لَ-وون)اسم صفت- واحد- مذکر- پالوان- پهلوان- تَوتناک- جمع پولوونان-

پلوونی:(پَ-لَ-وو-نی)اسم- پالوانی- پهلوانی- کُشتی- زورتیا-

پلوی:(پَ-لَ-وی)اسم- (۱)پلو کونه- طرفداری- (۲- صفت)طرفدار- (۲)یو قسم توت- (افغانستان)-

پلویخ:(پَ-لَ-ویخ)اسم صفت- (۱)ګوانډی- همسایه- (۲)ملګرے- مرستیال- طرفدار- (افغانستان)-

پلوی:(پَ-لَ-وی)اسم- واحد- مؤنث- خچې ګته- چیچنه ګته- کچه ګته- (افغانستان)-

پلوی:(پَ-لَ-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه جینۍ چې نوې پېغله شوې وی او ستر کوی- مستوره نجلۍ- مخ پټې پېغله-

پلوے:(پَ-لَ-وے)اسم- (۱)ګوانډی- همسایه- (۲- صفت)مرستیال- پلویخ- (افغانستان)-

پلوے:(پَ-لَ-وے)اسم- واحد- مذکر- چرمباز- پهٔ غوبل کښې بهر طرف ته غوئے- جمع پلوی-

پله:(پَ-له)اسم صوت- غوایهٔ ته له پولې نه دَ بچ کېدو دَ پاره اواز-

پله:(پَ-له)صفت- بند- چپ-

پله:(پَ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چاپېرے- چاپېرے- دَ تلې یو طرف- (۲)دَ دروازې یا ور یوه تمبه- جمع پلې-

پله:(پَ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طرف- خوا- (۲)موقع- وار- خل-

پله:(پَ-له)اسم- واحد- مذکر- (۱)پل- قدم- ګام- (۲)دَ ژرندې پل- حاشیه- کناره- جمع پلې-

پله:(پِله)اسم- واحد- مؤنث- وربه- وژه- دَ انسان او حیوان دَ بدن اعصاب- جمع پلې-

پله:(پِله)صفت- سخت- کلک-

پله ایلی:(پَ-له-ای-لی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم هیلی- مُرغابی- (افغانستان)-

پله پورې:(پَ-له-پو-رې)اسم صفت/متعلق فعل- پرله پسې- پله پسې- پهٔ یو مخ- یو بل پسې- مسلسل- متواتر-

پله تیره:(پَ-له-تی-رِه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پکه تیره-

پله سیخ:(پِله-سیخ)اسم صفت- واحد- مذکر- ابغ نبغ- دنګ- لوړ- لوړقامته-

پلی:(پَ-لی)اسم- واحد- مذکر- دَ کب یو قسم-

پلیا:(پَل-یا)اسم- واحد- مؤنث- پیدل- پلے- پیاده- پهٔ خپلو پښو-

پلیاړ:(پَل-یاړ)اسم- واحد- مذکر- واړ- باړ- شپول- دَ پټو نه ګېر چاپېر دَ حفاظت دَ پاره دَ غنو یا څانګو جوړ دیوال- جمع پلیاړونه-

پلیت:(پَ-لیت)اسم صفت- پلید- ګنده- خراب- مُردار- سخا- ناولے- بېلماخه- دَ پاک ضد- (م- فارسی)-

پلیتول:(پَ-لی-تَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)ګنده کول- سخا کول- مُردارول- ناپاکول- (۲)بېلماخه کول- ناولے کول- (۳)بدفعله کول- بدعمله کول- (۴)بدمعاشه کول- بداخلاقه کول- ورانول-

پلیتون:(پَ-لی-تَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ پلیتول-

پلیتونکے:(پَ-لی-تَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع پلیتونکی- مؤنث پلیتونکې- وګورئ پلیتول-

پلیتونګ:(پَ-لی-تَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ پلیتول-

پلیتونه:(پَ-لی-تَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ پلیتول-

پلیتونے:(پَ-لی-تو-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې مالوچ او وړی پرې تاوېږی یا پرې تاوولے شی-

پلیته:(پَ-لی-ته)اسم- واحد- مؤنث- کشوړه- لفافه- هغه دَ کپړې کشوړی چې دَ مړی دَ لامبولو پهٔ وخت کښې ئې غسل ورکونکے لاس ته اچوی-

پلیته:(پَ-لی-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ پلیت مؤنث- خرابه او بدکاره ښځه-

پلیته:(پَ-لی-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فلیته- دَ ډیوې یا لالټین باتی- پلته- پولته- وټ- (۲)توکه- شوټه- دَ جوارو شوټه- دَ جوارو هغه وږے چې دانې ئې لا پوره نهٔ وی نیولې- دَ جوارو وږے چې اول پټ نیسی-

پلیتی:(پَ-لی-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرداری- ناپاکی- ګندګی- چټلی- ناولتیا- (۲)بدعملی- بداخلاقی- بدمعاشی- ورانکاری-

پلیتي دار :(پلي-تی-دار)اسم- پلیته لرونکے- دَ پخواني زمانې دَ یو ټوپک نوم-

پلیتېدل:(پ-لی-تې-دل)مصدر لازم- (۱)ناپاکېدل- مُردارېدل- ناولے کېدل- گنده کېدل- (۲)بېلماځه کېدل- (۳)بدعمله کېدل-

پلیتېدن:(پ-لی-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پلیتېدل-

پلیتېدنګ:(پ-لی-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پلیتېدل-

پلیتېدنه:(پ-لی-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پلیتېدل-

پلیتېدونکے:(پ-لی-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پلیتېدونکی- مؤنث پلیتېدونکې- وګورئ پلیتېدل-

پلیتېدهٔ:(پ-لی-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پلیتېدل-

پلیتن:(پ-لی-تن)اسم- واحد- مذکر- پلېتن- دَ جولا هغه لرګے چې تنسته پرې تاووی- پټیلن-

پلیخ:(پ-لیخ)اسم- واحد- مذکر- دَ وژغنو جوړ شوے لمڅے-

پلید :(پ-لید)اسم صفت- وګورئ پلیت- (م- فارسی)-

پلیدی:(پ-لی-دی)اسم- وګورئ پلیتی-

پلیش:(پ-لیش)اسم- واحد- مذکر- پلېس- دَ یوې ونې پوستکے چې شپانهٔ دَ چقماق پهٔ ذریعه پرې اور بلوی- (افغانستان)-

پلینه:(پ-لی-نه)اسم- واحد- مؤنث- بانېکړ- دَ مسواک وُنه- پلیون- پلیونه-

پلیني:(پ-لی-ني)اسم- واحد- مؤنث- پینه- پېوند- ټوټه- ټانکه-

پلیون:(پ-لی-ون)اسم- واحد- مذکر- دَ مسواک وُنه- پلینه-

پلیونه:(پلی-وهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلینه-

پلېپل:(پلې-پل)اسم- پاپلے- پال پے- پائی پالی- دَ ماشوم پهٔ اول خل قدم اخستنه-

پلېتکه:(پ-لې-ت-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)باتی- پلته- پلیته- (۲)شغله- لمبه- (افغانستان)-

پلېټ:(پ-لېټ)اسم- واحد- مذکر- تالے- رکابی- رکېبی- (۲)دَ جامو یو قسم کپړه- (م- انګریزی)-

پلېټ فارم:(پ-لېټ-فا-رم)اسم- (۱)دَ ګاډی دَ ودرېدو ځایُ- (۲)دَ ودرېدو یو داسې ځایُ چې لهٔ نورې زمکې نه وچت وی- وُړه دونکاچه-

پلېټن:(پ-لې-ټن)اسم- وګورئ پلیتن-

پلېخی :(پ-لې-خی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یوه لوړه وُنه چې اوښان یُ پانړې خوری-

(۲)پلېخی- (م- فلېل)-

پلېس:(پ-لېس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پلیش-

پلېشه:(پ-لې-شه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اور شغله- پلوشه-

پلېکو:(پ-لې-کو)اسم- واحد- مذکر- پېکو- پانېکو- دنګ- دَ شولو یا اُربشو دَ ټکولو پېکو چې پهٔ اُبو هم ګرځی-

پُلېل:(پ-لېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)پولېل- خوشبویه تېل- عطر-

پلېمن:(پلی-من)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پلمن-

پلېمه:(پلې-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پلمن-

پلی:(پ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ لوبیا، مټر، مُیو او داسې نورو څیزونو دَ ګټې پهٔ ناپ هغه اوږده شان حصه چې دانې پکښې وی- پلے- (۲)دَ انګورو هغه څانګې چې دَ انګورو دَ شوکولو نه پس سره تړلے شی- (۳)سسپار- دَ سسپارې پال- کرکی- پال- (افغانستان)- (۴)دَ ارټ دَ چکر لرګے- ګراری- څرخ- (۵)کرنړی- (۲)دَ څهٔ لوښی نه پهٔ مقدار کښې دَ پیو یا دَ تېلو راچولو آله- (۷)پلاس- یو قسم وُنه-

پلے:(پ-لے)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کنجی- چابی- (۲)نوسے- (۳)سسپار-

پلے:(پ-لے)اسم- واحد- مذکر- پلی- (۱)دَ یو کلک بهرنی پوستکی پهٔ منځ کښې دننه دَ خوراک یا تخم دانه- (۲)دَ ځنو سبزو یا مېوو کچه بهرنے پوستکے لکه مټر، لوبیا وغېره-

پلے:(پهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- پیاده- پهٔ خپلو پښو- دَ سوارهٔ مقابل- جمع پلی- مؤنث پلې-

پلے سر :(پ-لے-سر)صفت- یواځې وسېدونکے-

پم:(پم)اسم- پاینګ- مېده شے- وړو شے-

پم:(پم)اسم- واحد- مذکر- یو متعدی جلدی مرض- خارښت- پمبی-

پمانی :(پ-ما-نی)اسم- جمع- مذکر- پمنکی- پمنی- پمنی- پونی- یو غرنیز تریخ خوند لرونکے بوټے چې پانړې نهٔ لری، ښهر یُ خیړ خیړ وی او دَ ترکاری پهٔ طور پخولے شی-

پمبچو :(پم-ب-چو)اسم- واحد- مؤنث- پمبی چو- دَ پومبې دَ بوټی وچ لرګے- (م- فارسی پنبه چوب)-

پمبه:(پم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خڅوڅکے- چُخاړے- (۲)خورے خورے- ټوټه- ذره- جمع پمبې- (افغانستان)-

پمبه چو :(پم-به-چو)اسم- واحد- مؤنث- کالکه- دَ خُشکې پُمبې زړے- (افغانستان)-

پمبی مشر :(پم-بی-مهٔ-شر)اسم- مذکر- (۱)دَ اصطبل داروغه- میراخور- (۲)داروغه- (افغانستان)-

پمبې چو :(پم-ب-چو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پمبه چو-

پمبے:(پم-بے)اسم- واحد- مذکر- پم- دَ شولو یا دَ جوارو دَ دانو خورے یا پوستکے- آخور- تومبی- تان- کرانړی- پاخور- (افغانستان)-

پمپ:(پمپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ اُبو دَ راکښلو یا وېستلو مشین- دَ باد ورکولو آله- پچکاری- دَ هوا پمپ- (۲)بمبه- (۳)ټیوب وېل- مشینی کوهے- (م- انګریزی)-

پمپول :(پم-پ-ول)مصدر متعدی- (۱)دَ پمپ پهٔ ذریعه هوا ورکول- (۲)دَ پمپ پهٔ ذریعه اُبهٔ ویستل- (۲)اُبهٔ ننویستل- (م- پمپ انګریزی)-

پمپی :(پم-پی)اسم- واحد- مذکر- (۱)هوا ورکونکے- باد ورکونکے-

جمع پوزکی-

پوزمار :(پوز-مار)اسم- پوزی وال- پوزی جوړونکے-

پوزمال:(پوز-مال)اسم- واحد- مذکر- د پوزې پاکولو رومال- دستمال- دسمال-

پوزمیر :(پوز-میر)اسم صفت- غټه پوزه لرونکے- غټ پوزے- پوزه ور-

پوزو :(پو-زو)اسم صفت- د غټې پوزې لرونکے- غټ پوزے-

پوزور :(پو-زه-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- غټه پوزه لرونکے- پوزه میر- پوز میر- غټ پوزے-

پوزه:(پو-زه)اسم- واحد- مؤنث- د سترګو په منځ کښې د مخ هغه اندام چې سا پرې اخستے شي-

پوزه:(پو-زه)اسم- واحد- مؤنث- شونډ- ورسک- د غرۀ، نغرې یا غونډۍ راوتې څوکه- جمع پوزې-

پوزه تو :(پو-زه-تو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د پوزې خاوند- د عزت خاوند- (۲)بدنامه- پوزور-

پوزیشن:(پو-زی-شن)اسم- واحد- مذکر- (۱)موقعه- ځاې- حالت- مقام- مورچه- (۲)حېثیت- حالت- (۳)ړول- طرز- خیال- انداز- نکته- (۴)مرتبه- عهده- مقام- شغل- (م- انګریزی)-

پوزے :(پ-و-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)مهار- نته- مار- هغه رسۍ چې د اوښ پوزې ته اچولے شي- (۲)هغه رسۍ یا پړے چې د اوښ لۀ سره راتاؤ شوی وي-

پوزے:(پو-زے)اسم- واحد- مذکر- انډېرے-

پوړ :(پوړ)اسم- (۱)د لوهار د پوکي اواز- (۲)د پښ د بنۍ اواز- (۲)پۀ خلۀ د اُبو شیندلو کار- (۴)بخار-

پوړل:(پو-ړل)مصدر متعدی- پوکنول- پوژویل- پوړول- نُستل- نوستل- ترمکه کول- ترمیا کول- پۀ خلۀ اُبۀ یا بل مائع څیز شیندل-

پوړلے :(پو-ړۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوړلی- مؤنث پوړلې- وګورئ پوړل-

پوړن:(پو-ړن)حاصل مصدر- وګورئ پوړل-

پوړنګ:(پو-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوړل-

پوړنه:(پو-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوړل-

پوړول:(پو-ړ-ؤل)مصدر متعدی- وګورئ پوړل-

پوړولے :(پو-ړ-وۀ-لے)اسم مفعول- پوړلے- وګورئ پوړول-

پوړونکے :(پو-ړ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوړونکی- مونث پوړونکې- وګورئ پوړل-

پوړونګ:(پو-ړ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پوړول-

پوړونه:(پو-ړۀ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوړول-

پوړ وهل:(پوړ-و-هل)مصدر- پوکنول- پوړل- پۀ خُلۀ اُبۀ یا بل مائع څیز شیندل-

پوړ وهلے :(پوړ-و-هۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوړ وهلی- مؤنث پوړ وهلې- وګورئ پوړ وهل-

پوړ وهن:(پوړ-و-هن)حاصل مصدر- وګورئ پوړ وهل-

پوړ وهنګ:(پوړ-و-هنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوړ وهل-

پوړ وهنه:(پوړ-و-هۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوړ وهل-

پوړ وهونکے :(پوړ-و-هون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوړ وهونکی- مؤنث پوړ وهونکې- وګورئ پوړ وهل-

پوړے :(پو-ړے)اسم- واحد- مذکر- د پیاز پۀ شان بېخ لرونکے واښۀ- جمع پوړی-

پوس:(پوس)اسم صفت- نرم- نازک- جمع پاستۀ- مؤنث پوسه- جمع مؤنث پوسې- (عامیانه)-

پوس:(پوس)اسم- واحد- مذکر- څرب څاروے- چاغ حېوان- مزے حېوان- مؤنث پوسه- جمع مؤنث پوسې- (افغانستان)-

پوسپوسک:(پوس-پو-سک)اسم- واحد- مذکر- د توتانو پۀ ونه کښې کېدونکې یو بدبویه او خړرنګے چینجے- (افغانستان)- جمع پوسپوسکی-

پوسپوسے :(پوس-پو-سے)اسم صوت- وګورئ پوسکے-

پوست:(پوست)اسم صفت- د کلک ضد- مېده- نرم- نازک- ملائم- جمع پاستۀ- مؤنث پسته-

پوست:(پوست)اسم- واحد- مذکر- (۱)څرمن- پوستکے- پوټکے- وژن- ژون- (۲)د قراقلي پوستکے- (۲)د خشخاشو غوټې- پوپه- (م- فارسی)-

پوست پوست:(پوست-پوست)اسم صفت (مرکب)- نرم و نازک- هوار او مهین- ملائم-

پوستک:(پوس-تک)اسم- واحد- مذکر- د څرمنې ټوټه- (افغانستان)-

پوستکي :(پوس-ت-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پټ- څرمن-

پوستوالے :(پوست-وا-لے)اسم- د "پوست" کېدو حالت- نرمي- نرم والے- ملائمتوب- مېده توب-

پوستول:(پوس-ت-ول)مصدر متعدی- (۱)څرمن ویستل- (۲)مېده کول- پستول- (۲)پۀ بې انصافۍ یا زور زیاتۍ سره لۀ چا مال دولت شوکول- (۴)بېر زیات وهل- (افغانستان)-

پوستون:(پوس-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ پوستول-

پوستونکے :(پوس-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوستونکی- مؤنث پوستونکې- وګورئ پوستول-

پوستونګ:(پوس-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پوستول-

پوستونه:(پوس-ته-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوستول-

پوسته:(پوس-ته)اسم- واحد- مؤنث- ډاکخانه- (افغانستان)-

پوسته:(پوس-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د خشخاشو غوټې- د افیمو پوپه- پوست- (۲)د پوپې عرق-

پوستي:(پوس-تي)اسم صفت- (۱)پوست خوړونکے- نشئي- (۲)ناراسته- لټ-

"زبر"(غ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ۀ"(ز-ړه)، "ۀ"(ړو-بې-دۀ)

سُست- بې کاره- (۳)شریف- امن پسند- جمع پوستیان-

پوستین:(پوس-تین)اسم- واحد- مذکر- دَ ګډورو لهٔ څرمنې جوړ واسکټ- نیم تنے-

پوستینچه:(پوس-تین-چه)اسم تصغیر- دَ پوستین اسم تصغیر- وړوکے کوټ- لنډ کوټ- جمع پوستینچې-

پوستینه:(پوس-تی-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پوستین-

پوستېدل:(پوس-تې-دل)مصدر لازم- (۱)پوست کېدل- کوتل کېدل- نرمېدل- پستېدل- (۲)ډېر زیات وهلے کېدل-

پوستېدن:(پوس-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پوستېدل-

پوستېدنګ:(پوس-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوستېدل-

پوستېدنه:(پوس-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوستېدل-

پوستېدونکے:(پوس-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوستېدونکی- مؤنث پوستېدونکې- وګورئ پوستېدل-

پوستېدهٔ:(پوس-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ پوستېدل-

پوسټ:(پوسټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډاک- (۲)ځاې- څوکۍ- (۳)ترقی- عهده- جمع پوسټونه- (م- انګریزی)-

پوسټ آفس:(پوسټ-آ-فس)اسم- واحد- مذکر- ډاکخانه- دَ ډاک دفتر- جمع پوسټ آفسونه- (م- انګریزی)-

پوسټر:(پوس-ټر)اسم- واحد- مذکر- پهٔ دېوالونو دَ لګولو اشتهار-

پوسټ کارډ:(پوسټ-کارډ)اسم- واحد- مذکر- خط- پهٔ ډاک دَ لېږلو هغه خط چې لفافه کښې بند نهٔ وی- وګورئ کارډ-

پوسټ مارټم:(پوسټ-مار-ټم)اسم- مړده خانه کښې دَ مړی طِبی معائنه- پوس ماټم- (م- لاطینی)-

پوسټ مېن:(پوسټ-مېن)اسم- پوسمېن- ډاکی- چټی رسان- (م- انګریزی)-

پوسکاوړ:(پوس-کا-وړ)اسم صفت- (۱)پوسکی اچونکے- پوسکی مار- پوسکی ډمډم- پسکن- پسکن- ټسن- (۲)بې کاره- سست پست- ناراسته- بې همته- (۳)ویرېدونکے- بزدل-

پوسکن:(پوس-کن)اسم صفت- وګورئ پوسکاوړ-

پوسکی ډمډم:(پوس-کی-ډم-ډم)اسم صفت- وګورئ پوسکاوړ-

پوسکی مار:(پوس-کی-مار)اسم صفت- وګورئ پوسکاوړ- جمع پوسکی ماران- مؤنث پوسکی ماره- جمع مؤنث پوسکی مارې-

پوسکۍ:(پوس-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)باد- پسکه- ټس- لهٔ کېډې خارجېدونکې بې اوازه هوا- (۲)دَ تحقیر کلمه-

پوسکۍ:(پو-سه-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- نرمه- دَ غوږ لاندینۍ برخه-

پوسکے:(پوس-کے)اسم صوت- پس پسے- پس پس- پهٔ غوږ کښې خبره- پوسپوسے- پټې پټې خبرې- غلې غلې خبرې-

پوسل:(پو-سل)مصدر- غوړول- پرورش کول- لویول- (م- هندی)-

پوسل توب:(پو-سل-توب)اسم- مذکر- دَ پوسل کېدو حالت-

پوسلل:(پوس-لل)مصدر- (۱)پسولل- پړلے کول- ښکلے کول- ښائېسته کول- (۲)چټ پټول- (افغانستان)-

پوسللے:(پوس-لهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوسللی- مؤنث پوسللې- وګورئ پوسلل-

پوسلنه:(پوس-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوسلل-

پوسلوالے:(پو-سل-وا-لے)اسم- پړول- ښکلا- ښائست- (افغانستان)-

پوسلونکے:(پوس-لون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوسلونکی- مؤنث پوسلونکې- وګورئ پوسل-

پوسلے:(پو-سهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوسلی- مؤنث پوسلې- وګورئ پوسل-

پوسماټم:(پوس-ما-ټم)اسم- وګورئ پوسټ مارټم-

پوسن:(پو-سن)اسم صفت- (۱)پوسکن- پوسکاوړ- پسن- پوسے- (۲)ناپوهه- کم عقل- احمق- (۳)دروغژن- پوزې مار- (۴)ویرېدونکے- ډرن-

پوسنه:(پو-سهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوسل-

پوسونکے:(پو-سون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوسونکی- مؤنث پوسونکې- وګورئ پوسل-

پوسه:(پو-سه)اسم- واحد- مؤنث- پوګ- پوڅه- کیڅه- ځخبوکے- تفاله- دَ پوڅه غلطه املا-

پوسه:(پو-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غوا مېښې سوټه- ځپیاکه- (ش- پنجابی)-

پوسه:(پو-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ شنې ونې مېوه چې لهٔ مېده کولو نه پس خوړلے شی- جمع پوسې-

پوسه:(پو-سه)اسم- واحد- مؤنث- پهه- پایه- پامه- پټی- جمع پوسې-

پوسهٔ:(پو-سهٔ)اسم- واحد- مذکر- ګډ- بز- پسهٔ-

پوسی:(پو-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پوسکی-

پوسے:(پو-سے)اسم صفت- وګورئ پوسن- جمع پوسی-

پوش ۱:(پوش)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوښ- غلاف- خلته- غلېب- (۲)جامه- (۳)دَ ناوې مخصوصه جوړه-

پوش ۲:(پوش)اسم صوت- (۱)لرې شه- بهرته شه- هغه خوا شه- بچ شه- خان وژغوره- (۲- اسم)پوشا پوش- پوش پوش- اوازونه- (م- فارسی)-

پوشا پوش:(پو-شا-پوش)اسم- وګورئ پوش ۲-

پوشاک:(پو-شاک)اسم- واحد- مذکر- لباس- جامه- کالے- نمرے- نورے- پوښاک- جمع پوشاکونه- (م- فارسی)-

پوش پوش:(پوش-پوش)اسم- مذکر- (۱)وګورئ پوشاپوش- (۲)دونګ دونګ- خیرې خیرې- دانګ وانګ-

پوشش:(پو-شش)حاصل مصدر- فارسی کښې حاصل مصدر، پښتو کښې اسم- جامه- لباس- اغستے- ځیز- (م- فارسی)-

پوشیده:(پو-شی-ده)اسم صفت د "پوشیدن" مصدر نه- غېب- پرده کښې- پټ- چې ښکاره نهٔ وی- (م- فارسی)-

پوښ:(پوښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پوش ۱- جمع پوښونه-

پوښ:(پوښ)اسم- واحد- مذکر- جهېز- کلنک- ختی-

پوښاک:(پو-ښاک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پوشاک-

پوښتل:(پوښ-تل)مصدر- وګورئ پښتل-

پوښتلے:(پوښ-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوښتلی- مؤنث پوښتلې- وګورئ پښتلے-

پوښتنه:(پوښ-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پښتنه-

پوښتول:(پوښ-تول)اسم- واحد- مذکر- لوئ تیر- بش- شاتیر- وښه-

پوښتونکے:(پوښ-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوښتونکی- مؤنث پوښتونکې- وګورئ پښتونکے-

پوښته:(پوښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- پښتنه- تپوس-

پوښتېدل:(پوښ-تې-دل)مصدر لازم- وګورئ پښتېدل-

پوښتېدن:(پوښ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پښتېدن-

پوښتېدنګ:(پوښ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پښتېدنګ-

پوښتېدنه:(پوښ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پښتېدنه-

پوښتېدونکے:(پوښ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوښتېدونکی- مؤنث پوښتېدونکې- وګورئ پښتېدونکے-

پوښتېدهٔ:(پوښ-تې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ پښتېدهٔ-

پوښتی:(پوښ-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)پښتی- (۲)کونځی- (۲)پشت- نسل- خېل-

پوښښ:(پو-ښښ)اسم- واحد- مذکر- پوشش- پوشښ- کوټه پټونه- پهٔ کوټه چې او خاوره اچونه-

پوښل:(پو-ښل)مصدر متعدی- لاس نیوه کول- فاتحه کول- پاتحه کول- غم خورګی کول- عذر کول- ډاډګیرنه کول-

پوښل:(پو-ښل)مصدر متعدی- پوشل- پټول- پټ ساتل- د لوښی سر پټول-

پوښلے:(پو-ښهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوښلی- مؤنث پوښلې- وګورئ پوښل-

پوښن:(پو-ښن)حاصل مصدر- وګورئ پوښل-

پوښنګ:(پو-ښنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوښل-

پوښنه:(پو-ښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوښل-

پوښونکے:(پو-ښون-کے))اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوښونکی- مؤنث پوښونکې- وګورئ پوښل-

پوښه:(پو-ښه)اسم- واحد- مؤنث- ستره- هغه لرګے چې پهٔ ازار مېدان کښې نمونځ کونکی ئې خپلې مخې ته ښخوی- جمع پوښې-

پوغله:(پوغ-له)اسم- واحد- مؤنث- بول- ډاسه- پېغولی- د نوی پېدا شوی بچی نرم بول-

پوقانه:(پو-قا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پوکانه-

پوقه:(پو-قه)اسم- واحد- مؤنث- ډوزه- لافه شافه- پوته- لویه وېنا- خان ښښېنه-

پوک:(پوک)اسم- (۱)بوس- پوک- پوکه- کیچه- تفاله- (۲)پو- پف- پوکے- (۲)پو- هغه څهٔ چې مېنځ ئې خالی وی- (۴)چټی- عبث- خشے- بې مغزه- سپک- احمق- (اسم صفت)-

پوکاره:(پو-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- پو- پوکے- پف- اور یا څهٔ تود څیز ته پوکے ورکونه-

پوکانه:(پو-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوبی- پوکنی- کوپنی- پوقانه- بوغی- کوکنهانی- خوپنی- پوکناړی- پونګړکه- (۲)د باد ډبوزه- بربوکی- (۲)د باران سره جوړېدونکے د ابو پهٔ سر کټورے- بوړبوړکی- حباب- (۴)مثانه-

پوکانی:(پو-کا-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پوکانه-

پوکل:(پو-کل)مصدر متعدی- هوا ورکول- باد ورکول- پوکاره ورکول- پهٔ خلهٔ غږول- (د شپېلی یا سرنا د پاره)-

پوکنول:(پوک-ن-ول)مصدر متعدی- وګورئ پوړ وهل-

پوکنولے:(پوک-نه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوکنولی- مؤنث پوکنولې- وګورئ پوړ وهلے-

پوکنون:(پوک-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پوړ وهن-

پوکنونکے:(پوک-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوکنونکی- مؤنث پوکنونکې- وګورئ پوړ وهونکے-

پوکنونګ:(پوک-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پوړ وهنګ-

پوکنونه:(پوک-ن-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوړ وهنه-

پوکنه:(پو-کهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوکل-

پوکناړی:(پوک-نا-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پوکانه-

پوکنهانی:(پوک-نها-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)بوړبوکی- حباب- بربوقی- بوړبوړکی- (۲)د بولو کڅوړه- مثانه- (۲)وګورئ پوکانه-

پوکنی:(پو-ک-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پوکانه-

پوکول:(پو-ک-ول)مصدر متعدی- وګورئ پوکل-

پوکون:(پو-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ پوکول-

پوکونکے:(پو-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوکونکی- مؤنث پوکونکې- وګورئ پوکول-

پوک وهل:(پوک-و-هل)مصدر متعدی- پوکے ورکول- پړسول- هوا ورکول- غږول-

پوکېدل:(پو-کې-دل)مصدر لازم- (۱)لهٔ هوا ډکېدل- پوکے ورکېدل- (۲)د ماشومانو پهٔ ژبه کښې سوزېدل-

پوکېدن:(پو-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پوکېدل-

پوکېدنګ:(پو-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوکېدل-

پوکېدنه:(پو-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوکېدل-

پوکېدونکے:(پو-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوکېدونکي- مؤنث پوکېدونکې- وګورئ پوکېدل-

پوکېدۀ:(پو-کې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پوکېدل-

پوکی:(پو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بنی- پوګر-

پوکے:(پو-کے)اسم- واحد- مذکر- پف- پوکاره- د خلې غنده هوا- جمع پوکی-

پوکے:(پو-کے)اسم تصغیر- د پوګ یا پک اسم تصغیر-

پوګ:(پوګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پک- اګ- پوتل- د رس لرونکیو څیزونو هغه حصه چې د ژوولو یا استعمالولو نه پس پاتې شي- (۲)پو- پوڅه- خالي- تش- بې کاره (صفت)-

پوګر:(پو-ګر)اسم- واحد- مذکر- هغه نلی چې زرګران ې د اور بلولو د پاره استعمالوی- بنی-

پوګړې:(پوګ-ړې)اسم صفت- باسی-

پوګه:(پو-ګه)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ پوک-

پول:(پول)اسم- واحد- مذکر- د سیند، نهر، نالې یا کندې د پاسه د تېرېدلو د پاره جوړه شوې لاره- جمع پولونه-

پول:(پول)اسم- واحد- مذکر- روپۍ- سکه- دولت- (افغانستان)-

پولاد:(پو-لاد)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوره- فولاد- د أسپنې سخت شکل- (۲)سخت او مضبوط وجود- (۳)کلک- مضبوط- (م- فارسی)-

پولادی:(پو-لا-دی)اسم صفت- (۱)د پولاد نه جوړ- سخت- مضبوط- ټینګ- غښتلے- (۲)عیاش- (۳)د یو قسم رنګ نوم- (اسم) (افغانستان)-

پولالین:(پو-لا-لین)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پلالین-

پولاؤ:(پو-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پلاو-

پول پوښ:(پول-پوښ)اسم- د کاریز یا نهر د پاسه چت-

پول پولک:(پول-پو-لک)اسم- واحد- مذکر- د أبو په غاړه زرغنېدونکے یو تریخ بوټے چې سرۀ سرۀ تېرۀ ازغی لری- (۲)نېغ- نېغکے- (۲)شاتره- نباتاتی نوم فیوریا آفسی نپلیس-

پولټیکل:(پول-ټی-کل)اسم- واحد- مذکر- (۱)د قبائلو د ایجنسی د انتظام لوئ افسر- پولټیکل ایجنټ- (۲)پوهه- چالاک- هوشیار- (د پولیټیکل مفقن)-

پولټیکلی:(پول-ټی-کۀ-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د پولټیکل علاقه- ایجنسی- (۲)چالاکی- فریب-

پولس:(پو-لس)اسم- واحد- (۱)پولیس- د امن و امان قائم ساتلو محکمه- (۲)د پولیس سپاهی- جمع پولسان- (د سپاهی په معنیٰ کښې)-

پولک:(پو-لک)اسم- واحد- مذکر- هغه مېخ چې په کنده کښې د پالې د ټینګولو د پاره ورکولے کېږی-

پولکی:(پول-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پالکی- د هاتی کجاوه-

پولکی:(پول-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- په تبې یا تبخې پخه شوې د غنمو نرۍ روټۍ- چپاتی- څپاستی- پاستی- (م- هندی- پهلکا)-

پولکے:(پول-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ پولکی- (۲)د أسپنې هغه سیخ (رمبے) چې خله ې پلنه وی او تنور نه پرې روټۍ رابېلولے شي-

پولنګ:(پو-لنګ)اسم- واحد- مذکر- د ووټونو اچونه- (م- انګرېزی)-

پولنګ افسر:(پو-لنګ-اف-سر)اسم- واحد- مذکر- د ووټونو د انتظام کولو ذمه دار عهده دار- (م- انګرېزی)-

پولنګ سټېشن:(پو-لنګ-سټې-شن)اسم- واحد- مذکر- د ووټونو اچولو ځائ-

پولو:(پو-لو)اسم- واحد- مذکر- چوګان- د یوې لوبې نوم چې په اسونو سوارۀ لوبغاړی ې په یو خاص قسم لرګیو او غنډسکی کوی-

پولول:(پو-ل-ول)مصدر متعدی- بخښل- بخښش کول- ورکول- په بخښانۀ ورکول-

پولولے:(پو-له-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پولولی- مؤنث پولولې- وګورئ پولول-

پولون:(پو-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ پولول-

پولونکے:(پو-له-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پولونکی- مؤنث پولونکې- وګورئ پولول-

پولونګ:(پو-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پولول-

پولونه:(پو-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پولول-

پوله:(پو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پولی- (م- هندی پهلا)-

پوله:(پو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حد بندی- برید- بند- څېره- ټک- سرحد- (۲)د پټی موره-

پوله:(پو-له)اسم صفت- نرم- پوست-

پوله:(پو-له)اسم- واحد- مؤنث- د سترګې پرده- جاله- د سترګې ګل- د سترګې اوره- (م- هندی)-

پوله پنبې:(پو-له-پنبې)اسم صفت- پنبې ابله- پنبې یله- هغه څوک چې پېزار ې په پښو کښې نۀ وی-

پولیس:(پو-لیس)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګورئ پولس-

پولې پولې:(پو-لې-پو-لې)اسم صفت- ټک ټک- برید برید- هغه زمکه چې ځائ په ځائ پولې پکښې جوړې شوې وی-

پولیپ:(پو-لیپ)اسم- واحد- مذکر- ستغ- پرسېدلے ځائ- (افغانستان)-

پولی:(پو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وچ وابښۀ- (۲)بوساره- (۳)کبډی- د رېشقې کوده- (۴)د زناناؤ د رمنځې سره وتلی وېښتۀ- (وروستی معنیٰ کښې م- هندی)-

پولی:(پو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د شولو یا جوارو دانه چې په بټ کښې وریته شي- (۲)تناکه-

پولی پولی:(پو-لی-پو-لی)اسم (مرکب)- تناکې تناکې- په وریتېدلو

پړسېدنه او پړک پړک چاودنه-

پولے:(پو-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)کپړه وَدونکے- جولا- پاولے- (۲)پاولی- دَ ښځو دَ سینګار هغه پسول چې پهٔ کالیو باندې ټک وهلے شي-

پولے:(پو-لے)اسم- واحد- مذکر- څلورانیز- دَ روپۍ څلورمه حصه- پاؤ-

پولے څپولے:(پو-لے-څ-پو-لے)اسم- مذکر- ناسته ټوپۍ- دَ ماشومانو یوه لوبه چې پهٔ دائره کښې کښېني او وار پهٔ وار دَ یو بل شا ته څادر یا ټوپۍ ږدی-

پومبه:(پوم-به)اسم- واحد- مؤنث- کربوسکه- کربسکه- یو بوټے او دَ هغې ګل چې ترې کپړه جوړیږی- نباتاتی نوم (دَ) ګاسپ یم (دَ خاندان یو بوټے)-

پومه:(پو-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرض- (۲)پم- دَ ښاربنت مرض-

پون:(پون)اسم- واحد- مذکر- پان-

پون:(پون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پونډ- جمع پونونه-

پون:(پون)اسم- واحد- مذکر- پومه- ښاربنت- خارش- پم-

پونبړی:(پوم-بړي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)سپک څیز- وړوکے څیز- (۲)دَ پومبې پهٔ شان هغه سپک څیز چې دَ بوټو وبخ پورې نښتے وی- (افغانستان)-

پونچه:(پون-چه)اسم- واحد- مؤنث- پونڅه- اخېړ- خاړه-

پونچی:(پون-چي)اسم- واحد/جمع- مونث- بوچی- دَ لوخې، منجو وغېره جارو چې چونه پرې ورکولے شي- کُوچی- پوچی-

پونچی:(پون-چي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ سپینو زرو غټې چې زنانه ئې پهٔ مزی کښې وپیئې او بیا ئې دَ کالی پهٔ ږول لاس کښې اچوی-

پوندانه:(پون-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پومبې تخم- پومبه دانه- چګت- وګورئ پومبه-

پوندړے:(پوند-ړے)اسم- واحد- مذکر- څنړے- څنو څیزونو سره لګولے شوے دَ تارونو یا وړی وغېره څنګبدونکے ګل- جمع پوندړی- (م- هندی پهندنا)-

پوندغلے:(پوند-دَ-غ-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه ټوټه څرمن چې پهٔ څپلو کښې دَ پوندې خوا ته اچولے کیږی- دَ څپلې یا پېزار پونده- پسکے-

پوندګلی:(پ-وند-ګ-لي)اسم- مؤنث- (۱)پونده توب- خانه بدوشی- (۲)دَ کوچیانو ژوند- مال څرونه- غوبه توب- ګوجر توب-

پونده:(پ-زن-ده)اسم- واحد- مذکر- پاونده- ګوجر- کوچے- دَ افغانستان دَ سیمې هغه پښتانهٔ چې پهٔ ژمی کښې به دَ قافلو پهٔ شکل کښې لاندې مېدانی علاقې ته راکوزېدل او اوړی کښې به ئې پاس غرنیزې علاقې ته کډې کولې-

پونده:(پون-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پښې وروستی حصه چې غوښه ئې سخته وی- (۲)هغه حصه چې دَ پښې دَ پوندې لاندې وی- (۲)دَ ټورې موټے-

پونډ:(پونډ)اسم- واحد- مذکر- پوڼ- یو قسم اتش ګیره ماده چې دَ مالوچو او دَ خنې ونو پاڼو او پوستکو نه به جوړولے شوه- خپه- پنړ- درګیر- خو- خفو- خپه- درګیران- یږے-

پونډ:(پونډ)اسم- واحد- مذکر- پون- دَ برطانیې دَ شلو شلنګونو لرونکې یوه طلائی سکه او نوټ- جمع پونډونه-

پونډکه:(پون-ډهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ساګ- سابهٔ- سبزی- پهٔ اور پخه شوې بشکه-

پونډه:(پون-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پنډبکر- بکوره- (۲)خو- خفو- درګیر- درګیران-

پونډی:(پون-ډی)اسم- واحد- مؤنث- دَ پنډی پسته غوښه-

پونسو:(پون-سو)اسم- پینځهٔ سوه-

پونصو:(پون-صو)اسم- پونسو- پینځهٔ سوه-

پونکے:(پون-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ماشومانو دَ لوبو شپېلے- (۲)دَ کاغذ نه جوړه یا دَ درزۍ نچه- پونکے- جمع پونکی-

پونګ:(پونګ)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)اولاد- پښ- پښت- پېداوښ- (۲)دَ مُلخانو بچ- (۲- اسم صوت)دَ بس، ټرک وغېره دَ هارن اواز-

پونګ:(پونګ)اسم صوت- (۱)ټنګ- پنګ- دَ ټیز اواز- (۲)دَ ژړا اواز- پړپنګ-

پونګړکه:(پونګ-ړ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پوکانړه-

پونګه:(پونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سرمایه- پنګه- پانګه- موړی- (۲)اولاد- نسل- (افغانستان)-

پونګی:(پونګ-ګي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تولی- درمه- دَ سُرنا هغه توتنی چې ژبه پرې کېښولے شی- (۲)شپېلی- (۳)غرهٔ کښې هوار ځایُ- دَ غرهٔ پهٔ سر هوار ځائے- (۴)دَ تجارت سامان- دَ سوداګری مال-

پونګے:(پونګ-ګے)اسم صوت- ټیز- دَ ماشومانو باد- ټر- پونګ-

پونګے:(پونګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- نچه- نېچه- کړکے- درمه- هغه دروزه یا راغنړ کړے کاغذ چې چرسیان دَ چرسو لوګے پرې څښی-

پونول:(پو-نه-وَل)مصدر متعدی- لېلامول- دَ خپل اصل قیمت نه پهٔ ارزانه بیعه خرڅول- نیلامول

پونولے:(پو-نه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پونولی- مؤنث پونولې- وګورئ پونول-

پونون:(پو-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ پونون-

پونونکے:(پو-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پونونکی- مؤنث پونونکې- وګورئ پونون-

پونونګ:(پو-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ پونون-

پونونه:(پو-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پونون-

پونه:(پو-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نرے باران- ښورمک- پشمک- شبنم- (۲)اُبهٔ خور- (افغانستان)-

پونی:(پو-ني)اسم- واحد- مؤنث- پوږ وهنه- پوژ وهنه-

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-بې-دهٔ)

پوني:(پو-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ چنې-

پونے:(پو-نے)اسم- واحد- مذکر- پمنکے- پمنے- پمانے- يو تريخ خوند لرونکې غرنيزه سبزي- وګورئ پماني- جمع پوني-

پوڼ:(پوڼ)اسم- واحد- مذکر- پونړ- پنړ- د پخواني زمانې يو قسم د اور لګولو پنړ بکر-

پوڼ:(پوڼ)اسم صفت- (۱)کوګ- پړ- چې مېنځ ئې خالي وي- (۲)پاڼ- پانړ- (۳)د سيند يا خوړ يوې خوا ته د خاورو لمن يا څنډه-

پوڼاقه:(پو-ڼا-قه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پوڼاکه- تڼاکه- پولې- (۲)د سوزېدو نه پس را ختلې پولې-

پوڼاکه:(پو-ڼا-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پوڼاقه-

پوڼکه:(پو-ڼ-که)اسم- واحد- مؤنث- حُباب- خوپيه- بربوکې- پړبکے-

پوڼکے:(پوڼ-کے)اسم- واحد- مذکر- شپېلے- شپېلک- شورشوري- د ربل ګاډي چغه- کريکه- سېټي-

پوڼکے:(پوڼ-کے)اسم- واحد- مذکر- پونکے- پونکې- ټرنا- سُرنا- ښکر- جمع پوڼکي-

پوڼل:(پو-ڼل)مصدر- مستي کول- د مستي نه لټې وهل- پوڼېدل- په موړې پښې ټکول-

پوڼلے:(پو-ڼه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوڼلي- مؤنث پوڼلې- وګورئ پوڼل-

پوڼنه:(پو-ڼه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوڼل-

پوڼول:(پو-ڼ-ول)مصدر متعدي- (۱)د څه څيز منځ خالي کول- کوګول- پړول- (۲)څوک تنګول- په ډېرو خبرو څوک تنګول-

پوڼولے:(پو-ڼ-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوڼولي- مؤنث پوڼولې- وګورئ پوڼول-

پوڼون:(پو-ڼ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پوڼول-

پوڼونکے:(پو-ڼ-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوڼونکي- مؤنث پوڼونکې- وګورئ پوڼول-

پوڼونکے:(پو-ڼون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوڼونکي- مؤنث پوڼونکې- وګورئ پوڼل-

پوڼونګ:(پو-ڼ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پوڼول-

پوڼونه:(پو-ڼ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوڼول-

پوڼه:(پو-ڼه)اسم صفت- د اس مخصوص قدم- د اس تګ-

پوڼيا:(پوڼ-يا)اسم- بد رد- سپکاوے- (کول مصدر)-

پوڼېدل:(پو-ڼې-دل)مصدر لازم- (۱)پړېدل- خالي کېدل- (۲)د اس په موړې پښې ټکول- خرمستي کول- (۳)په ډېرو خبرو اورېدلو تنګېدل-

پوڼېدلے:(پو-ڼې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوڼېدلي- مؤنث پوڼېدلې- وګورئ پوڼېدل-

پوڼېدن:(پو-ڼې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پوڼېدل-

پوڼېدنګ:(پو-ڼې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوڼېدل-

پوڼېدنه:(پو-ڼې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوڼېدل-

پوڼېدونکے:(پو-ڼې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوڼېدونکي- مؤنث پوڼېدونکې- وګورئ پوڼېدل-

پوڼېده:(پو-ڼې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ پوڼېدل-

پوڼۍ:(پو-ڼۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پوړی-

پوښۍ:(پو-ښۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پوخۍ- لېڅۍ- لخۍ- د وړيو هغه ګنجې چې د ورېشلو د پاره په لاس باندې راتاؤ شوی وي-

پوښۍ:(پو-ښۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پاکټ- کڅوړی- خلته- لفافه-

پوښے:(پو-ښے)اسم- مذکر- وګورئ پم-

پوو:(پوو)کلمه- د حېرت کلمه- اَخَ-

پوو:(پ-وو)اسم- پوونه- څرونه- پيائنه-

پووار:(پو-وار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ پوار- (م- هندی)-

پووره:(پو-وه-ره)اسم صفت- پوهره- پُواړه- هغه ښځه چې سوتره کار نهٔ کوي-

پوول:(پو-ول)مصدر- څرول- پيايل-

پوولے:(پو-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوولي- مؤنث پوولې- وګورئ پوول-

پوون:(پو-ون)حاصل مصدر- وګورئ پوول-

پوونده:(پو-ون-ده)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پاونده-

پوونکے:(پو-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوونکي- مؤنث پوونکې- وګورئ پوول-

پوونګ:(پو-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پوول-

پوونه:(پو-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوول-

پوونے:(پو-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پووني- مؤنث پوونې- وګورئ پوول-

پوه:(پوه)اسم صفت- پوه- پوئ- هوښيار- د پوهې خاوند-

پوه:(پوه)اسم صفت- پوهه لرونکے- عالم- خبردار- جمع پوهان-

پوه:(پوه/پو)اسم- واحد- مؤنث- د فصلي کال نهمه مياشت چې په ژمی کښې د مګر نه پس او د ما نه مخکښې راځي (د دسمبر ۱۵ نه د جنوری ۱۲ پورې)- (م- هندی)-

پوه:(پ-وه)اسم صفت- زېمناکه زمکه- اوته- وتره زمکه- نمناکه زمکه-

پوها:(پو-ها)کلمهٔ تعجب- پوهو- د حېرانتيا په وخت ويونکې کلمه-

پوهاړ:(پو-هاړ)اسم صفت- پواړ-

پوهاړه:(پو-ها-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د پوهاړ مؤنث- پواړه ښځه- وګورئ پووړه-

پوهان:(پو-هان)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)د پوه جمع- (۲)لوئ أستاد- پروفېسر- پوهاند- (افغانستان)-

پوهاند:(پو-هاند)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پوهان (پروفېسر)-

پوهاند والے:(پو-هاند-وا-لے)اسم- دَ "پوهاند" کېدو حالت او رتبه- (افغانستان)-

پوهړ:(پو-هړ)اسم صفت- پوارړ-

پوهړه:(پو-هٔ-ړه)اسم صفت- پوارړه- پوورړه-

پوهړتوب:(پو-هړ-توب)اسم- دَ پوهړ کېدو حالت- وګورئ پوهړ-

پوهلنډے:(پوه-لن-ډے)اسم صفت- واحد- مذکر- کم عقل- لنډاکے- جمع پوهلنډی- مؤنث پوهلنډی- (افغانستان)-

پوهمن:(پوه-من)اسم صفت- واحد- مذکر- هوښيار- پوه- دانا- (افغانستان)-

پوهنتون:(پو-هن-تون)اسم- واحد- مذکر- يونيورسټي- جامعه- (افغانستان)-

پوهنځئ:(پو-هن-ځئ)اسم- واحد- مذکر- دَ يونيورسټي فېلکټي- شعبه- فاکولته- (افغانستان)-

پوهند:(پو-هند)اسم صفت- هوښيار- پوه- (افغانستان)-

پوهندوئے:(پو-هن-دو-ئے)اسم- واحد- مذکر- لهٔ پوهنمل نه وچته علمی رُتبه- (افغانستان)-

پوهنده:(پو-هن-ده)اسم صفت- مؤنث- دَ پوهند مؤنث- وګورئ پوهند- (افغانستان)-

پوهنمل:(پو-هن-مل)اسم- واحد- مذکر- دَ پوهنيار نه وچته درجه- دَ کابل دَ پوهنتون دربمه درجه- (افغانستان)-

پوهنه:(پو-هٔ-نه)اسم- علم- پوهه- پويه- هوښيارتيا- هوښيارتوب- (افغانستان)-

پوهنيار:(پو-هن-يار)اسم- واحد- مذکر- دَ پوهنمل نه ښکته علمی رتبه- (افغانستان)-

پوهو:(پو-هو)کلمهٔ تعجب- وګورئ پوها-

پوهوتلے:(پوه-و-تهٔ-لے)اسم- مفهوم- مطلب- (افغانستان)-

پوهول:(پو-هه-ول)مصدر متعدی- علم ورکول- مطلب ته رسول- لار ښوول-

پوهولے:(پو-هه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوهولی- مؤنث پوهولې- وګورئ پوهول-

پوهون:(پو-هه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پوهول-

پوهونکے:(پو-هه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوهونکی- مؤنث پوهونکې- وګورئ پوهول-

پوهونګ:(پو-هه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پوهول-

پوهونه:(پو-هه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوهول-

پوهوهو:(پو-هو-هو)کلمه- دَ ډېرې حېرانتيا کلمه- پوهو- پها- پېښې-

پوهه:(پو-هه)اسم- واحد- مؤنث- علم- هوښيارتيا- جمع پوهې-

پوهه ناک:(پو-هه-ناک)اسم صفت- مذکر- هوښيار- پوهېدونکے- پويه لرونکے-

پوهېدل:(پو-هې-دل)مصدر لازم- علم موندل- خبر موندل- مطلب ته رسېدل-

پوهېدلے:(پو-هې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پوهېدلی- مؤنث پوهېدلې- وګورئ پوهېدل-

پوهېدن:(پو-هې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پوهېدل-

پوهېدنګ:(پو-هې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوهېدل-

پوهېدنه:(پو-هې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوهېدل-

پوهېدونکے:(پو-هې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پوهېدونکی- مؤنث پوهېدونکې- وګورئ پوهېدل-

پوهېدهٔ:(پو-هې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پوهېدل-

پوهيالے:(پوه-يا-لے)اسم صفت- عقلمند- هوښيار- جمع پوهيالی- مؤنث پوهيالې-

پوئ:(پوئ)اسم صفت- دَ پوه عاميانه غلط قرأت-

پويول:(پو-يه-ول)مصدر متعدی- دَ پوهول عاميانه غلط قرأت-

پويولے:(پو-يه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پويولی- مؤنث پويولې- وګورئ پوهولے- عاميانه او غلط قرأت-

پويون:(پو-يه-ون)حاصل مصدر- عاميانه غلط قرأت- وګورئ پوهون-

پويونکے:(پو-يه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پويونکی- مؤنث پويونکې- وګورئ پوهونکے- عاميانه غلط قرأت-

پويونګ:(پو-يه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پوهونګ- عاميانه غلط قرأت-

پويونه:(پو-يه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوهونه- عاميانه غلط قرأت-

پويه:(پو-يه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)منډه- (۲)دَ اَس يو مخصوص چال-

پويه:(پو-يه)اسم صفت- واحد- مؤنث- پوهه-

پويه پويه:(پو-يه-پو-يه)اسم (مرکب)- پهٔ تپوس تپوس- پهٔ ډېر خيال او فکر-

پوييدل:(پو-نې-دل)مصدر لازم- پوهېدل- عاميانه او غلط قرأت-

پويېدلے:(پو-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پويېدلی- مؤنث پويېدلې- وګورئ پوهېدلے- عاميانه او غلط قرأت-

پويېدن:(پو-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پوهېدن- عاميانه او غلط قرأت-

پويېدنګ:(پو-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پوهېدنګ- عاميانه او غلط قرأت-

پويېدونکے:(پو-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پويېدونکی- مؤنث پويېدونکې- وګورئ پوهېدونکے- عاميانه او غلط قرأت-

پويېدهٔ:(پو-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ پوهېدهٔ- عاميانه او غلط قرأت-

پهٔ:(پاه)کلمه- پوه پوه- (دَ اظهار نفرت کلمه)-

پهٔ:(پهٔ)حرف جار- (۱)دَ پاسه- باندې- دَ پاره- (۲)حرف قسم- (۳)دَ حالت دَ بيانولو کلمه لکه پهٔ خندا، پهٔ ژړا، پهٔ تللو، پهٔ شروع، پهٔ آخر وغېره- (۴)دَ متعلق فعل عام علامت-

پهٔ اخے:(پهٔ-ا-خے)اسم صفت- کنجے- سوړر- لنړه- چترے-

پهٔ تکی:(پهٔ-تهٔ-کی)متعلق فعل- (۱)پهٔ ړز- فوراً- سمدستي- یو دم- بې تاخیره- بې تامله- دُ سترګو پهٔ رپ کښې- (۲)بیخی- بالکل- پهٔ هغه درنګ-

پهٔ ړز:(پهٔ-ړز)فعل (مرکب)- بې درېغه- بې ویرې- بې خوفه- چې پهٔ کولو کښې ئې هیڅ سرفه ونهٔ کړے شي-

پهار:(پ-هار)اسم- واحد- مذکر- پار- پهر- دُ ورځې یا شپې څلورمه حصه- پهارونه- دُ شوارزز اتمه حصه- درې ګېنټې- جمع پهارونه-

پهاری:(پ-ها-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم موسی-

پهاړه:(پ-ها-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پاړه (دُ ضرب ګردانونه)- (م- هندی-)

پهر:(پ-هر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پهار-

پهرو دار:(په-رو-دار)اسم صفت- وګورئ پهره دار- (متروک)-

پهرو داری:(په-رو-دا-ري)اسم- وګورئ پهره داری- (متروک)-

پهره:(په-ره)اسم- وګورئ پهار-

پهره:(په-ره)اسم- واحد- مؤنث- پېره- څوکی- څوکیداری- ساتنه- حفاظت- جمع پهرې-

پهره دار:(په-ره-دار)اسم صفت- پېره ورکونکے- محافظ- څوکیدار- پېره دار- څارونکے-

پهره داری:(په-ره-دا-ري)اسم- واحد- مؤنث- دُ پهرې ورکولو حالت- څوکیداری- پېره داری- نګرانی-

پهړ:(په-هړ)اسم صفت- سرزورے اَس- پهٔ کېزه کښې نهٔ ګرځېدونکے اَس- خَشَنګ اَس-

پهړه:(په-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پهوړه- پهوړی- دُ جوګیانو لنړه امسا- (۲)دُ ملنګانو دُ غاړې امېل-

پهلواری:(پل-وا-ري)اسم- واحد- مؤنث- پلواری- پلواړی- یو سپین ګل-

پهلوان:(په-ل-وان)اسم صفت- پالوان- طاقتور- تکړه- مضبوط- زورور- جمع پهلوانان- مؤنث پهلوانه- جمع مؤنث پهلوانې-

پهلوانی:(په-ل-وا-ني)اسم- دُ پهلوان جوړېدو حالت- وګورئ پالوانی-

پهم:(پ-هم)اسم- واحد- مذکر- پام- پانګ- خیال- فکر-

پهن تر:(پ-هن-تر)اسم صفت- زیات پلن- زیات ارت- (م- فارسی)-

پهن سرین:(پ-هن-س-رین)اسم صفت- پلن کناتی لرونکے- (م- فارسی)-

پهوړه:(پ-هو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دُ جوګیانو امسا- پهړه- پهوړی- جمع پهوړې-

پهوړه:(پ-هو-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- پواړه- خیرنه- خچنه- ناولې-

پهوړی:(په-هو-ړي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پهوړه ۲-

پهول:(پهٔ-ه-ول)مصدر متعدی- دُ پوهول عامیانه قرأت-

پهونکے:(پهٔ-هه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پهونکي- مؤنث پهونکې- وګورئ پوهونکے-

پهونه:(پهٔ-هه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پوهونه-

پهه:(پ-هه)اسم- واحد- مؤنث- په- پامه- ترمه- پټی-

پی:(پي)اسم- جمع- مذکر- (۱)اُبهٔ- (۲)شودهٔ-

پیا:(پ-یا)اسم- واحد- مؤنث- پایه- پیه- (م- هندی- پهیه)-

پیاپے:(پ-یا-پے)متعلق فعل- مسلسل- پهٔ یو مخ- پرله پسې- مکرر- (م- فارسی)-

پیاتی:(پیا-تي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېتی-

پیاڅه:(پیا-څه)اسم- واحد- مؤنث- دُ باجرې یا دُ جوارو روټی-

پیاخړه:(پیاخ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پیاخله- پیالخه- یو قسم کشیده-

پیاخله:(پیاخ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پیاخړه-

پیاخله:(پیاخ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګلوبند- (۲)خوله راوستنه- (۳)دُ قمیص دُ غاړې مغزے- هغه ټوټه چې دُ قمیص، غاړې او دُ لستوڼو دُ کپړنو پهٔ منځ کښې اېښودل شوې وی-

پیاد:(پیاد)اسم- یاد- حفظ-

پیاده:(پیا-ده)اسم صفت- (۱)پهٔ خپلو پښو- (۲)دُ څنو محکمو چپړاسی- دُ محکمهٔ مال چپړاسی-

پیارژندی:(پیار-ژن-دي)اسم- واحد- مؤنث- دُ شپې اُبهٔ خور- دُ شپې دُ پټیو خرزبونه-

پیارغنده:(پیار-غن-ده)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ تمبو چارچاپېره دُ باران دُ اُبو دُ بندېز دُ پاره جوړه شوې پوله- جمع پیارغندی-

پیاړمه:(پیاړ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چیړه- څېره- ریتاړه- لتوړه- رنجه- خرڅوړے- (۲)چڼیا-

پیاړمه:(پیاړ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کښه- لنګه- دُ کټ لنګه- (۲)دم چی-

پیاړمه خور:(پیاړ-مه-خور)اسم صفت- (۱)هغه څاروے چې پیاړمه خوری- (۲)دُ بل ګټه خوړونکے- (۳)حامی څېری کونکے-

پیاز:(پیاز)اسم- واحد/جمع- مذکر- دُ عام استعمال یوه بوئ داره سبزی چې دُ پخېدو نه پس دُ "پیازی" رنګ غټو کښې بدله شي- نباتاتی نوم ایلیم سیپا- (ش- هندی)-

پیازکے:(پیا-زه-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دُ پیاز پهٔ رنګ یو واښهٔ- (۲)اوړکی- نباتاتی نوم ارجینیا انډیکا (URGINEA INDICA)-

پیازه:(پیا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سپیازه- زیان- سره کېدنه- هغه ښځه یا ماده څناور چې دُ وخت نه مخکښې بچے وغرځوی- (۲- صفت)ضائع- عبث- (۳)دُ یو داسې څیز ښکاره کېدنه چې دانسته پټ ساتلے شوے وی-

پیازی:(پیا-زی)صفت- دُ پوخ پیاز پهٔ شان نرے سوربخن رنګ او دغه رنګ لرونکے څیز-

پیاسه:(پیا-سه)اسم- واحد- مؤنث- دُ تورو مچو هغه کبین چې شهد پکښې نه وی- وړے- خالی کګ-

ي (څي-رل)، ی (مې-ره-ول)، ئ (پیا-لي)، ئے (تن-دي) تفصیل دُ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پیاسه:(پیا-سه)اسم- واحد- مؤنث- پیاشۀ- خوړ- لګړ- دَ سېلاب لاره- جمع پیاسې-

پیاشۀ:(پیا-شۀ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پیاسه-

پیاغله:(پیاغَ-له)اسم- واحد- مؤنث- پیاخله- خوله راوستنه- ناروغ خولې کونه- (افغانستان)-

پیاکی:(پیا-کی)اسم- سپینې- وانۀ- دَ پوندو نه بره او دَ پنړۍ نه ښکته دَ پښو شا ته نرمه او پسته غوښه- پړکو-

پیاکي:(پیا-کي)متعلق فعل- وروستو- شا ته- پسې- (افغانستان)-

پیالخه:(پیال-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ تبې لاندینے اړخ- (۲)هغه ځایَ چې تبې پکښې ښخولے شي-

پیاله:(پیا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ څښلو وړوکے لوښے- (۲)دَ شرابو څښلو پېمانه- جمع پیالې- (ش- فارسی، هندی)-

پیالی:(پیا-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پیاله- دَ څښلو لوښے- (ش- هندی، فارسی)-

پیام:(پ-یام)اسم- واحد- مذکر- سوال ځواب- ځواب- پېغام- خبر- جمع پیامونه- (م- فارسی)-

پیانده:(پ-یان-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سلسله- وړد مزے- کړۍ- (۲)وړده قصه- جمع پیاندې-

پیانګه:(پیانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ دېوال دَ ګړۍ اوبزانده پُرزه چې هر سېکنډ یو خوا او بل خوا حرکت کوي- پنډولم- هغه پُرزه چې اوبزانده وي او اُخوا دېخوا خوځي راخوځي- پېنډولم- جمع پیانګې-

پیانو:(پیا-نو)اسم- واحد- مؤنث- یوه لویه انګریزی باجه چې پۀ دواړه لاسه غږیږي- (م- انګریزي)-

پیاورکے:(پیا-ور-کے)اسم- واحد- مذکر- څپلمی- نباتاتی نوم کلوټروپس جای ګینتی-

پیاوړ:(پیا-وړ)اسم- واحد- مذکر- پرهر- زخم- پرار- جمع پیاوړونه-

پیاوړتوب:(پیا-وړ-توب)اسم- تکړه توب- قوت- طاقت- زور- پیاوړتیا-

پیاوړتیا:(پیا-وړ-تیا)اسم- وګورئ پیاوړتوب-

پیاوړه:(پیا-وۀ-ړه)اسم صفت- پیوړه- پئ ورکونکې- پیوره

پیاوړے:(پیا-وۀ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- زوروَر- تکړه- قوي- طاقتور- بهادر- بادر- جمع پیاوړي-

پیاوږه:(پیاوږ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پیاړمه- لنګه- کښه- کوزسر-

پیاوه:(پیا-وه)اسم- یو چینجے چې کپړې خوري- جمع پیاوې-

پیاوے:(پیا-وے)اسم- واحد- مذکر- نبزه وړے- ګنګخړ- ګندخړ- پنځوني- خخله- ګینګخړ- کانۍ- هغه واښۀ یا نور سپک څیزونه چې دَ سېلاب دَ ابو پۀ سر روان وي- جمع پیاوي-

پیایل:(پیا-یل)مصدر- څرول- پوول-

پیاین:(پیا-ین)حاصل مصدر- وګورئ پیایل-

پیاینه:(پیا-یۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پیایل-

پیایونکے:(پیا-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پیایونکي- مؤنث پیایونکې- وګورئ پیایل-

پیپ:(پیپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیک-

پیپ:(پیپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پوزې یو پسول چې دَ لونګ پۀ شان شکل لري- جمع پیپونه- (۲)دَ ګاړی اواز- (دَ ماشومانو لهجه)- (۳)نو- (م- هندی)-

پیپاړی:(پی-پا-ړی)اسم- واحد- مذکر- شپېلک- شورشوری- پونګے- سېټي- چغه- کریکه-

پیپړ:(پی-پړ)اسم صفت- بوړا بوق- بوړا- چې مخ ئې ګُنجې وي- مؤنث پیپړه-

پیپړتوب:(پی-پړ-توب)اسم- دَ پیپړ کېدو حالت-

پیپړک:(پیپ-ړک)اسم- پیپړې- خواره غوښه-

پیپړه:(پیپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- برانګه- پرجن- چیچړه- چیړه- جمع پیپړې-

پیپړه:(پی-پۀ-ړه)اسم صفت- دَ پیپړ مؤنث-

پیپل:(پی-پل)اسم- واحد- مذکر- پلنې او غټې پاڼې لرونکې یوه ونه چې هندوان ئې ډېر احترام کوي- نباتاتی نوم فیکس ری لی ګیوسا-

پیپل پاڼه:(پی-پل-پا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- یوه کپړه چې دَ پیپل دَ پاڼې پۀ شان ګل پرې چاپ شوے وي-

پیپلی:(پیپ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ پیپل دَ ونې غُنډې غُنډې مېوې-

پیپلے:(پیپ-لے)اسم- واحد- مذکر- پۀ دارو کښې استعمالېدونکے یو قسم وړد مرچ- دَ دارو یو قسم- (م- عربی فلفل)-

پیپه:(پی-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ډرم- (۲)دَ تېلو دَ پاره پکارېدونکے دَ لرګی، ټیم یا پلاسټک نه جوړ لوښے-

پیت:(پیت)اسم صفت- چپړ- چیت- ټیټ- پلن- اوار- دَ جګ ضد- مؤنث پیته-

پیتا:(پی-تا)اسم صفت- شکست خوړلے- غمزده-

پیتاؤ:(پی-تاؤ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پیتاوے- دَ نمر ګرمی- (۲)هغه ځایُ چې پۀ ژمی کښې خلق پکښې نمر ته ناست وي-

پیتاوه:(پی-تا-وه)اسم- واحد- مؤنث- غړے- هغه پټۍ چې دَ پښو نه تاوولے شي-

پیتاوے:(پی-تا-وے)اسم- وګورئ پیتاؤ-

پیت پړق:(پیت-په-ړق)اسم صوت- پیت پړک- دَ نارو دَ مړز اواز- (مصدر کول)-

پیت پړک:(پیت-په-ړک)اسم صوت- وګورئ پیت پړق-

پیت پزے:(پیت-پۀ-زے)اسم صفت- پیت پوزے- بوچ- بونجے- بوچے- چیت پوزے-

"زبر"(غ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "زبر"(کـ-تاب)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ره)، "ۀ"(پو-هی-دۀ)

پیت پوزے:(پیت-پو-زے)اسم صفت- وګورئ پیت پزے-

پیتل:(پی-تل)اسم- واحد/جمع- مذکر- زیړ- د تانبې او جستو نه جوړ یو زیړرنګے دات- (م- هندی)-

پیتلے:(پی-تہ-لے)اسم صفت- د زیړو چانګ- تیمی چانګ- چائے جوش پوله چانګ-

پیت نسے:(پیت-ن-سے)اسم- واحد- مذکر- پتنوس- مجمه- (افغانستان)- (م- روسی)-

پیتو:(پی-تو)اسم- واحد- مؤنث- (۱)موځې- مځوځې- د ایشتپا موځې- میرکاټې- میرکاټ- (۲)اټه- لچې- د تار ګنجې-

پیتول:(پی-تہ-ول)مصدر متعدی- چیتول- چخپیتول- پلنول- چپریخول- چپړول-

پیتون:(پی-تہ-ون)حاصل مصدر- وګورئ پیتول-

پیتونکے:(پی-تہ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پیتونکی- مؤنث پیتونکې- وګورئ پیتول-

پیتونګ:(پی-تہ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پیتول-

پیتونه:(پی-تہ-وہ-نہ)حاصل مصدر- وګورئ پیتول-

پیته:(پی-تہ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فیته- د پیمائش پټې- (۲)ټیپ- پټې- (۳)د ټائپ پټې- (۴)د سر د ویښتو د تړلو پټې- (۵)د ښځو د لوپټو او د قمیص لمنې ته د اچولو ګلداره پټې-

پیتې:(پی-تې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پیتې-

پیتې:(پی-تې)اسم- (۱)د غاښونو خیرې- (۲)د شوملو غړکه- د شوملو د غړکې منګ-

پیتېدل:(پی-تې-دل)مصدر لازم- چیتېدل- چپریخېدل- پلنېدل- په زور پلنېدل-

پیتېدن:(پی-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پیتېدل-

پیتېدنګ:(پی-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پیتېدل-

پیتېدنه:(پی-تې-دہ-نہ)حاصل مصدر- وګورئ پیتېدل-

پیتېدونکے:(پی-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پیتېدونکی- مؤنث پیتېدونکې- وګورئ پیتېدل-

پیتېده:(پی-تې-دہ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پیتېدل-

پیتے:(پی-تے)اسم صفت- (۱)چیت- لنډے- مندرے- (۲)چیت پوزے- پیت پوزے-

پیتے:(پی-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پتاخیدار- باتی دار- کوړے- د پخوانی زمانې یو ټوپک چې باتو ته به یې اور ورته کېده نو ډز به یې کولو- (۲)خرتمی چرګ- جمع پیتیان-

پیټ:(پیټ)اسم- واحد- مذکر- لعنت- افسوس- وګورئ پپټ ۲- (م- هندی)-

پیټ:(پیټ)اسم- یو قسم مخصوص طبعی سکاره چې د کاربن اندازه یې ۵۰ فیصد نه ۶۰ فیصد پورې وه-

پیټ:(پیټ)اسم- واحد- مذکر- بوج- په ملا پروت بار-

پیټو:(پی-ټو)اسم صفت- لعنتی- ملعون- یوه ښېره- (م- هندی)-

پیټو مهیرک:(پی-ټو-مه-هی-رک)صفت- ملعون او سپېره- لعنتی او خوار شوے- یوه ښېره- (م- غالباً د هندی له پهټکار او مورکه څنې)-

پیټی بند:(پی-ټی-بند)اسم- واحد/جمع- مذکر- ملګرے- د فوځ یا پولس انډی وال-

پیټی بندی:(پی-ټی-بن-دی)اسم- ملګرتیا- وګورئ پیټی بند-

پیچکے:(پی-چہ-کے)اسم تصغیر- پیکے- د تندی ویښته-

پیچکے:(پیچ-کے)اسم- واحد- مذکر- پچے- پچونے-

پیچلک:(پیچ-لک)اسم صفت- لکه منے- پونډاکے- د لکی څلے- دنباله- هغه څوک چې د چا شا ته د مرید یا نوکر په شان روان وی- (م- هندی)-

پیچواړی:(پیچ-وا-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)هغه رسی چې اس پری په وروستو پښو تړلے شی- (۲)پیچوانړی- په کوړی کښې د تولې برابرولو د پاره اچولی تارونه- (م- هندی)-

پیچوانړی:(پیچ-وا-نړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پیچواړی-

پیچول:(پی-چول)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پوزور- غټ پوزے- لوئ پوزے-

پیچول:(پی-چول)اسم- واحد- مذکر- یوه پیمانه چې یو پیچول یو کور جوړیږی-

پیچونے:(پی-چو-نے)اسم تصغیر- ډېر وړوکے-

پیچه:(پی-چہ)اسم- واحد- مؤنث- هغه پولې چې جینکی یې د سر د ویښتو د سنګار په وخت سر کښې جوړوی-

پیځانې:(پی-ځا-نې)اسم صفت- (۱)پوټے- بکسکے- لږ شان- (۲)د غوښې زره تیکه- قطره- جمع پیځانې-

پیځکورے:(پیځ-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- پځوکے- ورغومے- مرغومے- د بزې وړوکے بچے-

پیځکه:(پیځ-که)اسم- واحد- مؤنث- پیځه- پلو- پیځکی- د لوپټې یا څادر ګټ- جمع پیځکې-

پیځکی:(پیځ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پیځکه-

پیځه:(پی-ځه)اسم- واحد- مؤنث- پلو- لمن- پیځکے- پیځکه-

پیځه:(پی-ځه)اسم- واحد- مؤنث- چپلے- څپرلے- جمع پیځې-

پیځیالے:(پیځ-یا-لے)اسم صفت- صبرناک- زغم لرونکے-

پیخاړه:(پی-خا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د کډو بزو په پښو پورې نښتې پچه- جمع پیخاړې-

پیخړې:(پی-خه-ړې)اسم- جمع- مؤنث- چړیخې- چوخړې- چخې- چیخړې- د سترګو د کنجونو چیخړې-

پیچی:(پی-چی)اسم صفت- په زور تنګ کړے شوے- (عام طور سره د څلې

دَ پاره راځي)-

پیړ:(پیړ)اسم صفت- پیړے- کجے- کچے- اړے- کوږے- پیړن- د کږو پښو لرونکے-

پیړن:(پی-ړن)اسم صفت- وګورئ پیړ-

پیړے:(پی-ړے)اسم صفت- وګورئ پیړ-

پیر:(پیر)اسم صفت- (۱)مرشد- بزرګ- لار ښونکے- (۲)زوړ- سپین ږیرے- بوډا- مشر- جمع پیران- (۳)دَ ګل ورځ- جمع پیرونه-

پیرانِ پیر:(پی-را-ن-پیر)اسم- دَ شیخ عبدالقادر جیلاني رحمة الله علیه لقب- لوئ خوان-

پیرانه:(پی-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پیر کورنۍ- دَ پیر کور- پیر خانه- جمع پیرانې-

پیربانی:(پیر-با-ني)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ یوې روحاني طریقې ملګرے- دَ یو پیر سره پۀ مریدۍ کښې شریک دَ یو پیر منونکی- دَ یوې عقیدې او یو مسلک روښه- جمع پیربایان-

پیر خانه:(پیر-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- پیرانه- دَ پیر و مرشد کور-

پیرشاتی:(پیر-شا-تي)اسم- دَ خوب دَ راتګ نښې یا نیم ویښ او نیم اودۀ-

پیرکۍ:(پی-ره-کۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- پۀ تنور کښې پخېدونکے دَ سموسې پۀ شان یو څیز-

پیرکے:(پی-ره-کے)اسم تصغیر- وړوکے پیر- (طنزاً)-

پیرکے:(پیر-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ بلنخې دَ ونې پلے- (۲)وړوکے پیر- جمع پیرکی-

پیرمن:(پیر-من)اسم- پروین- ثریا- پۀ اسمان کښې اووۀ ستورې-

پیری:(پی-ری)اسم- (۱)بوډا توب- زوړ والے- زړولی- (۲)دَ پیر کار-

پیري مُریدي:(پی-ري-م-ري-دي)اسم- دَ پیري مریدي کار یا تعلق-

پیس:(پیس)اسم- واحد- مذکر- دَ تاش وېشنه- جمع پیسونه-

پیس:(پیس)اسم- تکبر- مغرور تیا- کبر-

پیس:(پیس)اسم- برص- دَ برګې مرض- بروص- مؤنث پیسه- (ش- فارسی)-

پیسکوټ:(پیس-کوټ)اسم- واحد- مذکر- دَ تاش یوه لوبه- ترب- توروب-

پیسکوړک:(پیس-کو-ړک)اسم- واحد- مذکر- (۱)باد وهلے وړے- شفه وړے چې پۀ څۀ وجه وچ شی او پۀ دانه کښې ئې مغز نۀ وی- (۲)دَ مغز نه خالي غز-

پیسل:(پی-سل)مصدر متعدی- دَ تاش دَ پاڼو وېشل- (ش- پنجابی، هندی)-

پیسلے:(پی-سۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پیسلی- وګورئ پیسل-

پیسلے:(پیس-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ اَنۀ خور پۀ وخت پاتې شوے وچ خاې- جمع پیسلی-

پیسمن:(پیس-من)اسم صفت- مغرور- متکبر- مؤنث پیسمنه- جمع مؤنث پیسمنې-

پیسنه:(پی-سۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پیسل-

پیسونکے:(پی-سون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پیسونکی- مؤنث پیسونکې- وګورئ پیسل-

پیسونے:(پی-سو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پیسونی- مؤنث پیسونې- وګورئ پیسل-

پیسه:(پی-سه)اسم- واحد- مؤنث- پېرشاني- شینځۀ- دَ وېښتو لار-

پیسے:(پی-سے)اسم صفت- دَ پیس بیمار- دَ برګی مریض-

پیش:(پیش)اسم- واحد- مذکر- دَ وړو جینکو شرمګاه-

پیش:(پیش)اسم- واحد- مذکر- بلیکے- پیشے- نرغوت- پش- پشے- دَ پیشو نر- جمع پیشان-

پیشاړه:(پی-شا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)توقه- ملنډه- مسخره- پچموزه- (۲)حمله- جمع- پیشاړې-

پیشاک:(پی-شاک)اسم- واحد جمع- مذکر- پیشک- دَ سپوږې مرض-

پیش پړانګ:(پیش-پړانګ)اسم- واحد- مذکر- جمع پیش پړانګان- مؤنث پیش پړانګه- جمع مؤنث پیش پړانګې- وګورئ پړاپیش-

پیش پړی:(پیش-په-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- قرقره لرونکې دَ بلبل پۀ شان یوه مرغۍ-

پیش پو:(پیش-پو)اسم- واحد- (۱)پیش قرے- الی جبلی- شاړوله- اتڼ- پیشپوبازی- (۲)پۀ اتڼ کښې دَ پیش اواز- دَ ښځو یو قسم اتڼ-

پیشپو بازی:(پیش-پو-با-زی)اسم- دَ پیشو لوبه- الی جبلی- پیش قرے-

پیش پیش:(پیش-پیش)اسم صوت- (۱)دَ پیشو دَ را بللو اواز- (۲)ماشومانو ته دَ موتیازو کولو پۀ وخت وئیلے کېدونکے ترکیب-

پیشپېلے:(پیش-پې-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)شپېلے- شپېلق- (۲)غږ- دَ کونکی اواز- دَ کارخانو یا کاډو دَ انجن چغه- سېټۍ- جمع پیشپېلی-

پیشت:(پیشت)اسم صوت- پشې- پیشه- پیشتې- دَ پیشو دَ شړلو اواز- (افغانستان)-

پیشتاکۍ:(پیش-تا-کۍ)اسم صفت- مؤنث- (۱)پیشتکی- منډری- قد و قامت کښې وړه- (۲)یوه خاص قسم چرګه چې پۀ قد وړه وی-

پیشترے:(پیش-تۀ-رے)اسم- واحد جمع- مذکر- پېشترے- وګورئ اخنګ-

پیشتکی:(پیش-ت-کۍ)اسم صفت- واحد- مؤنث- پیشتینکه- ټیټکی- غنډۍ- چیټکې- غنډکۍ- منډرۍ- شفه ښځه چې ډېره غنډکۍ وی- مذکر پیشتکے-

پیشتکے:(پیش-ته-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوړۍ- اندرپایه- درپیه- (افغانستان)- پاشتکے- پاشتکۍ- (۲ صفت)وګورئ پیشتکۍ-

پیشتونګ:(پیش-تو-نګ)اسم عدد- وګورئ پیشتے ۱-

پیشته:(پیش-ته)اسم- وګورئ پیشت- (افغانستان)-

پیشته مغز:(پیش-ته-م-غز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پسته-

پیشتے ۱:(پیش-تے)اسم عدد- پیشتونګ- ډېر لوی عدد- سل اربه-

پیشتے ۲:(پیش-تے)اسم صفت- غنډکے- منډرے- مړرے- ټیټکے- پیشتکے- جمع پیشتي- مؤنث پیشتۍ-

پیشخوړ:(پیش-خوړ)اسم- پیشوخُړ- کنډ- کانډ- ګوړی-
پیشک:(پی-شک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیشاک-
پیشکارل:(پیش-کا-رل)مصدر- (۱)سپے یا پیشو رابلل- (۲)ماشوم ته د موتیازو کولو په وخت کښې پیش پیش وئیل-
پیشکارلے:(پیش-کا-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پیشکارلي- مؤنث پیشکارلې- وګورئ پیشکارل-
پیشکارنه:(پیش-کا-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پیشکارل-
پیشکارونکے:(پیش-کا-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پیشکارونکي- مؤنث پیشکارونکې- وګورئ پیشکارل-
پیشکنړے:(پیش-کن-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پیشونګړے- پیشنکوړے- د پیشو وړوکے بچے- (۲)لۀ کوره ځیزونه پټونکے ماشوم- (۳)هر وخت موړ پسې روان ماشوم-
پیشکه ۱:(پی-شۀ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړه پیشو- (۲)پیشوګۍ- پیشۍ- پیشکۍ- د ونو پاڼې خوړونکے یو قسم چینجے- جمع پیشکې-
پیشکه ۲:(پیش-که)اسم- واحد- مؤنث- لوئې ګوړے-
پیشکۍ:(پیش-کۍ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پیشکه ۱-
پیشکے:(پیش-کے)اسم- واحد- مذکر- د پیشکۍ مذکر-
پیشلره:(پیش-لۀ-ره)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اخنډ-
پیش ملو:(پیش-م-لو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیش پرانګ-
پیشنګ:(پی-شنګ)اسم- واحد- مذکر- د قافلې په سر کښې روان ټټو یا خر- (افغانستان)-
پیشنکوړے:(پی-شنګ-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیشکنړے-
پیشو:(پی-شو)اسم- واحد- مؤنث- بلیکۍ- بلیکی- د پیش ماده- جمع پیشوګانې-
پیشو پرانګ:(پی-شو-پرانګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیش پرانګ-
پیشوپړی:(پی-شوپ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د رسه کشی لوبه- (افغانستان)-
پیشوخُړ:(پی-شو-خُړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیش خُړ-
پیشوشو:(پی-شو-شو)اسم- واحد- مؤنث- ماشومې جینۍ ته د مینې توری- پیشوګۍ-
پیشوکۍ:(پی-شو-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پیشۍ- وړه نتکۍ یا وړه نته-
پیشوګۍ:(پی-شو-ګۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)یو قسم چینجے چې خارښت لګوي- پیشوکۍ- پیشۍ- (۲)نتکۍ- (۳)وړه پیشو- (۴)د وړې جینۍ د پاره د مینې توری-
پیشوګۍ:(پی-شو-ګۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بلیکۍ- وړه پیشو-
پیشوګے:(پی-شو-ګے)اسم تصغیر- مذکر- وړوکے پیش- جمع پیشوګي-
پیشولګه:(پی-شول-ګه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم واښۀ- جمع پیشولګې-
پیشولمے:(پی-شول-مے)اسم- واحد- مذکر- سور جینجڼ- جنجړ- جینجړ-
(افغانستان)-
پیشولنده:(پی-شو-لن-ده)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم واښۀ- (افغانستان)-
پیشو مالګه:(پی-شو-مال-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لنهړے- لنهړے مارے- د ماشومانو یوه لوبه چې د سا ورزش پکښې کیږي- (۲)د پیشترۍ ساګ شومره یوه مالګینه ګیاه چې اومه خوړے شي-
پیشومپړی:(پی-شومپ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- مېرغولے چې د غنډسکې او په زمکه کښې د جوړو شوو خانو په ذریعه کیږي-
پیشونګری:(پی-شونګ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د پیشو بچې- وړه پیشو-
پیشونګړی:(پی-شونګ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بازی ګره- بازی ګره- بوړا غانړے- انډوخر- لټه پیر- خربازی- کلابازی- یو قسم لوبه-
پیشونګړے:(پی-شونګ-ړے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- پیشونګوړے- وړوکے پیش- مؤنث پیشونګړی-
پیشونګوړے:(پی-شونګ-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیشونګړے- جمع پیشونګړي-
پیشه:(پی-شه)اسم- واحد- مؤنث- څریکه- په مغزو اور بلېدنه- مازغۀ خټکېدنه- جمع پیشې-
پیشه پیشه:(پی-شه-پی-شه)اسم صفت- جګ جیګ- نیغ نیغ-
پیشیمه:(پی-شي-مه)اسم- پشیمه- د پیشو کرمېدنه- د پیشو وار راوړنه- (کېدل مصدر)-
پیشۍ:(پی-شۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سخت زهر لرونکے یو قسم وړوکے مار- لوبشتۍ- ګوس منګور- لنډۍ- لټکه- ګوسنه-
پیشۍ:(پی-شۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)بلیکۍ- پیشو- (۲)پیشکۍ- پیشوکۍ- پیشوګۍ- د بوټو یو قسم چینجے-
پیشۍ:(پی-شۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د ماشومانو آله تناسل-
پیشۍ:(پی-شۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د پوزې نته- پیشوکۍ- (۲)د خرمنې میانۍ- (افغانستان)-
پیشۍ چنګوټۍ:(پی-شۍ-چن-ګو-ټۍ)اسم- واحد- مؤنث- پیشونګړے- پیشنکوړے- د پیشو بچے-
پیک:(پیک)اسم- واحد- مذکر- (۱)مغه لرګے چې د اوبۀ کته پرې تړلے شي- (۲)د تېلو کرنی- قیف-
پیک:(پیک)اسم- واحد- مذکر- (۱)څپاسه- (۲)مچ شړونے- مچ شړ- مچ بنګ- چوری- جمع پیکان/پیکونه-
پیکرکے:(پی-کر-کے)اسم- واحد- مذکر- پیکړ- ټیکړے- کودرے- ټیکرکے- پیکرکے- جمع پیکرکي-
پیکرکے:(پی-کر-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیکرکے- جمع پیکرکي-
پیکړے:(پی-کۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پیکرکے- جمع پیکړي-

ی (څي-رل)، ی(مې-ره-ول)، ی(پیا-لي)، یٔ(تن-دیر) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پیکوړه:(پی-کو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری پکوړه-

پیکه:(پی-که)اسم صفت- (۱)بلمنګه- (۲)کم خواږهٔ لرونکے- (۳)هغه رنګ چې شوخ نهٔ وی- (۴)کچه- شرمنده-

پیکه توب:(پی-که-توب)اسم- (۱)پیکه والے- کچه والے شرمندګی- (۲)دَ رنګ تتوالے- (۳)بې خوندی-

پیکه والے:(پی-که-وا-لے)اسم- وګوری پیکه توب-

پیکی:(پی-کی)اسم- واحد- مؤنث- څونګه- څنډے- چونګښه- چونښه- څوکښې- جغه- چچه-

پیَل:(پ-یَل)مصدر- پېلل-

پیل:(پیل)اسم- واحد- مذکر- فیل- هاتی- اتی- جمع پیلان- (م- فارسی)-

پیل پا:(پیل-پا)اسم- مؤنث- (۱)دَ پښې پړسېدنه- (۲)دَ کوټې لویه غټه ستنه-

پیلغوزه:(پیل-غو-زه)اسم- واحد- مؤنث- پلنه روټۍ- (دَ هاتی دَ غوږ په مناسب)- جمع پیلغوزې- (افغانستان)-

پیل پیکه:(پیل-پی-که)اسم- واحد- مؤنث- اوښکې- بی بی اوښه- شنه اوښه- یو قسم ښن رنګ لرونکے چینجے- جمع پیل پیکې-

پیلځکے:(پی-لځ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګوری پیلټکے-

پیلټکے:(پی-لټ-کے)اسم- واحد- مذکر- سرباری- پیلځکے-

پیلټکے:(پی-لټ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګوری پیټکے-

پیل خانه:(پیل-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ هاتیانو دَ ساتلو ځاې- (م- فارسی)-

پیلستے:(پی-لس-تے)اسم صفت- ژبے- زبے- خلموټے- نوے ځوان- ځوانی ته رسېدلے- جمع پیلستی-

پیل مرغ:(پیل-مرغ)اسم- واحد- مذکر- دَ چرګ دَ کورنۍ یو خړتم لرونکے مارغهٔ- خړتمی چرګ- پیتے-

پیلوان:(پیل-وان)اسم صفت- ماوت- هاتی ساتونکے- جمع پیلوانان- (افغانستان)-

پیَله:(پ-یهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- پېله- دَ پښو یو پسول- پائل- (م- هندی)-

پیَلے:(پ-یهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- (۱)جمع پیَلی- مؤنث پیَلې- وګوری پیَل- (۲)پېللے توپک-

پیَن:(پ-ین)حاصل مصدر- وګوری پیَل-

پین پړت:(پین-پړت)اسم صوت- (۱)پیت پرق- ټکېرک- نارو ته دَ اچولی مرز اواز- دَ بلارې دَ مرز اواز- (۲)دَ افلاس او نشتی نارې- (مصدر کول)-

پینجن:(پین-جن)اسم- واحد- مذکر- نداف- ننداف- پانډسی- (ش- هندی، پنجابی)-

پینځ پاوے:(پینځ-پا-وے)اسم- (۱)پینځهٔ پاوه- یو داسې لوښے چې پینځهٔ پاوه یعنی یو سیر او یو پاو پکښې ځائیږی- (۲)هغه کانړے چې پینځهٔ پاوه وزن لری او تله کښې استعمالیږی-

پینځ پریزه:(پینځ-پ-ری-زه)اسم صفت- واحد- مؤنث/مذکر- پینځهٔ پرۍ لرونکے/لرونکې- پینځهٔ مورګې یا ژی لرونکے/لرونکې-

پینځ پېسیز:(پینځ-پې-سیز)اسم- دَ پینځو پېسو پاکستانی سکه- پینځ پېسې وال-

پینځ پېسې وال:(پینځ-پې-سې-وال)اسم- وګوری پینځ پېسیز-

پینځ ټکیز:(پینځ-ټه-کیز)اسم- پینځ ډزے ټوپک-

پینځ څنډے:(پینځ-څن-ډے)اسم صفت- پینځ لړیز- پینځهٔ څنډې، مورګې یا پړې لرونکے-

پینځ سویز:(پینځ-سه-ویز)اسم صفت- پینځهٔ سوه (۵۰۰) سره تعلق لرونکے- دَ پینځو سوو (۵۰۰)- دَ پینځو سوو نوټ-

پینځ سېرے:(پینځ-سې-رے)اسم- دَ پینځو سېرو دَ تول کانړے-

پینځ ښاخے:(پینځ-ښا-خے)اسم- واحد- مذکر- شمع دان-

پینځ غاښے:(پینځ-غا-ښے)اسم صفت- وګوری پینځ غښے-

پینځ غښے:(پینځ-غه-ښے)اسم صفت- (۱)پینځهٔ غښے- (۲)هغه څناور چې عمر ې پینځهٔ کاله وی- پینځ کلیز- جمع پینځ غښی- جمع مؤنث پینځ غښې-

پینځ کابلیزه:(پینځ-کاب-لی-زه)اسم- دَ افغانستان دَ پینځو افغانیو سکه یا نوټ- جمع پینځ کابلیزې-

پینځ کریزه:(پینځ-ک-ری-زه)اسم (مرکب)- دَ پینځو کرو هغه څیز چې پینځهٔ کری یا حلقې لری- پینځ کریز-

پینځ کلن:(پینځ-ک-لن)اسم صفت- دَ پینځو کالو- مؤنث پینځ کلنه- جمع مؤنث پینځ کلنې- (افغانستان)-

پینځ کلنی:(پینځ-ک-ل-نی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- دَ پینځ کلنی مؤنث- وګوری پینځ کلنے-

پینځ کلنے:(پینځ-ک-ل-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ پینځو کالو- جمع پینځ کلنی- مؤنث پینځ کلنی-

پینځ کلیز:(پینځ-ک-لیز)اسم صفت- دَ پینځو کالو-

پینځ کلیزه:(پینځ-ک-لی-زه)اسم صفت- مؤنث- (۱)دَ پینځو کالو- (۲)دَ پینځو کالو دَ پاره- جمع پینځ کلیزې-

پینځ کټیز:(پینځ-ک-ټیز)اسم صفت- پینځهٔ ګټونه لرونکے- پینځهٔ زاویې لرونکے-

پینځ کټے:(پینځ-ک-ټے)اسم صفت- مخمس- پینځهٔ ګټونه لرونکے- جمع پینځ کټی- مؤنث پینځ کټې/کټی-

پینځګون:(پینځ-ګون)اسم صفت- (۱)یو په پینځهٔ- (۲)دَ پینځو نوټ- (اسم)-

پینځ لړیز:(پینځ-له-ړیز)اسم صفت- پینځهٔ لړی لرونکے-

پینځلس:(پین-ځل-لس)اسم عدد- لهٔ څوارلسو یو زیات- لهٔ شپاړسو یو کم-

پینځلسم:(پین-ځل-له-سم/پینځ-ل-سم)اسم صفت- دَ پینځلس دَ هندسې مذکر صفتی شکل-

پینځلسمه:(پین-ځل-له-سهٔ-مه)اسم صفت- دَ پینځلس دَ هندسې مؤنث صفتی

زبر"(غ-یهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(یو-بې-دهٔ)

شکل-

پېنځلسې:(پېنځ-لە-سې)اسم- دَ شوقدر شپه- دَ برات شپه- (افغانستان)-

پېنځم:(پېن-ځم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځمه:(پېن-ځهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ:(پېن-ځهٔ)اسم عدد- لهٔ شپږو یو کم- لهٔ ځلورو یو زیات-

پېنځهٔ اتیا:(پېن-ځهٔ-اَت-یا)اسم عدد- لهٔ شپږ اتیا یو کم- لهٔ ځلور اتیا یو زیات-

پېنځهٔ اتیایم:(پېن-ځهٔ-اَت-یا-یَم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ اتیا دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ اتیایمه:(پېن-ځهٔ-اَت-یا-یهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ اتیا دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ اویا:(پېن-ځهٔ-او-یا)اسم عدد- لهٔ شپږ اویا یو کم- لهٔ ځلور اویا یو زیات-

پېنځهٔ اویایم:(پېن-ځهٔ-او-یا-یَم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ اویا دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ اویایمه:(پېن-ځهٔ-او-یا-یهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ اویا دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ پنځوس:(پېن-ځهٔ-پَن-ځوس)اسم عدد- لهٔ شپږو پېنځوسو یو کم- لهٔ ځلورو پنځوسو یو زیات-

پېنځهٔ پنځوستم:(پېن-ځهٔ-پَن-ځوس-تَم)اسم صفت- وګورئ پېنځهٔ پنځوسم-

پېنځهٔ پنځوستمه:(پېن-ځهٔ-پَن-ځوس-تهٔ-مه)اسم صفت- وګورئ پېنځهٔ پنځوسمه-

پېنځهٔ پنځوسم:(پېن-ځهٔ-پَن-ځو-سم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ پنځوس دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ پنځوسمه:(پېن-ځهٔ-پن-ځو-سهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ پنځوس دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ ځلوېښت:(پېن-ځهٔ-ځل-وېښت)اسم عدد- لهٔ شپږ ځلوېښتو یو کم- لهٔ ځلور ځلوېښتو یو زیات-

پېنځهٔ ځلوېښتم:(پېن-ځهٔ-ځل-وېښ-تَم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ ځلوېښت دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ ځلوېښتمه:(پېن-ځهٔ-ځل-وېښ-تهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ ځلوېښت دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ دېرش:(پېن-ځهٔ-دېرش)اسم عدد- لهٔ شپږ دېرشو یو کم- لهٔ ځلور دېرشو یو زیات-

پېنځهٔ دېرشم:(پېن-ځهٔ-دېر-شم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ دېرش دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ دېرشمه:(پېن-ځهٔ-دېر-شهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ دېرش دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ ډېبز:(پېن-ځهٔ-ډ-بېز)اسم صفت- (۱)چې پېنځهٔ ډېې ورسره تړلې وی- (۲)دَ کنځلو پهٔ ډول هم وئیلې شی- دوه ژبې- درغل- پېنځ ډېبز-

پېنځهٔ ړزې:(پېن-ځهٔ-ړ-زې)اسم صفت- واحد- مذکر- پېنړزې- پېنځړزې- کوڼ غوږې- پنځ ټکیز- غوږور ټوپک- هغه ټوپک چې پهٔ ججوره کښې یې پېنځهٔ کارتوسونه ځایږی-

پېنځهٔ شپېتم:(پېن-ځهٔ-شپې-تَم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ شپېتهٔ دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ شپېتمه:(پېن-ځهٔ-شپې-تهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ شپېتهٔ دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ شپېتهٔ:(پېن-ځهٔ-شپې-تهٔ)اسم عدد- لهٔ شپږ شپېتو یو کم- لهٔ ځلورو شپېتو یو زیات-

پېنځهٔ غاښې:(پېن-ځهٔ-غا-ښې)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ اُوو کالو اوښ- (۲)پنجغښې- دَ پېنځو غاښو لرونکې هغه آکه چې دَ یوې نه پس پری زمکه مواروله شی-

پېنځهٔ غښې:(پېن-ځهٔ-غ-ښې)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه حیوان چې پېنځو کالو ته رسېدلې وی-

پېنځهٔ ګټیزې:(پېن-ځهٔ-ګ-ټې-زې)اسم صفت- وګورئ پېنځ ګټیز-

پېنځهٔ نوی:(پېن-ځهٔ-نهٔ-وی)اسم عدد- لهٔ شپږ نوی (۹۶) یو کم- لهٔ ځلور نوی (۹۴) یو زیات-

پېنځهٔ نوی یم:(پېن-ځهٔ-نهٔ-وی-یَم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ نوی (۹۵) دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ نوی یمه:(پېن-ځهٔ-نهٔ-وی-یهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ نوی (۹۵) دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځهٔ وخته:(پېن-ځهٔ-وخ-تَه)اسم صفت- (۱)همېشه- ټوله ورځ- ټول شواروز- دَ شپې او ورځ تقسیم شوی وختونه- سحر، نماسپښین، نمازیګر، نماښام، نماسختن-

پېنځهٔ وختیز:(پېن-ځهٔ-وخ-تیز)اسم صفت- (۱)پېنځیز- دَ پېنځو وختو سره تعلق لرونکې- (۲)پېنځهٔ وخته نمونځ کونکې- مؤنث پېنځهٔ وختیزه- جمع مؤنث پېنځهٔ وختیزې-

پېنځهٔ ویشت:(پېن-ځهٔ-ویشت)اسم عدد- لهٔ شپږ ویشتو (۲۲) یو کم- لهٔ ځلېریشتو (۲۴) یو زیات-

پېنځهٔ ویشتم:(پېن-ځهٔ-ویش-تَم)اسم صفت- دَ پېنځهٔ ویشت (۲۵) دَ مندسې مذکر صفتی شکل-

پېنځهٔ ویشتمه:(پېن-ځهٔ-ویش-تهٔ-مه)اسم صفت- دَ پېنځهٔ ویشت (۲۵) دَ مندسې مؤنث صفتی شکل-

پېنځیز:(پېن-ځیز)اسم صفت- مذکر- پېنځګون-

پېندی:(پېن-دی)اسم- واحد- مؤنث- کُشتی- پرزونې- پرځونې-

پېنډ:(پېنډ)اسم- واحد- مذکر- کجوره- دَ کجورې مېوه- جمع پېنډی-

پېنهل:(پېن-ہل)مصدر- پیمدل- پیمانه کول-

پېنس:(پی-نس)اسم- واحد- مذکر- ډولی- پالکی- جپان- امبالی- مغه د لرګی او بوڼ نه جوړه ډولی چې د ناریانو د بوتللو راوستلو د پاره پکاریږی- (م- هندی)-

پېنک:(پی-نک)اسم- د اپیمو د نشې تبال، تار- د اپیمو د سختې نشې کېفیت-

پېنکه دانه:(پېن-که-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری پیسکوړک- بادوهلے ورے- مغه زړے چې په څه وچ شی او په دانه کښې مغز وی- جمع پېنکی-

پېنکے:(پی-ن-کے)اسم- واحد- مذکر- پېنه- د لرګی ښانګ-

پېنګ:(پ-ېنګ)حاصل مصدر- وګوری پېل-

پېنګن:(پېنګ-ګن)اسم صفت- د لنډې او کمې حوصلې خاوند- مؤنث پېنګنه- جمع مؤنث پېنګنې-

پېنل:(پی-نل)مصدر- پکل- تلے اچول- پکه اچول- د پکې تلے اچول-

پېنلے:(پی-نه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېنلی- مؤنث پېنلې- وګوری پېنل-

پېننه:(پی-نه-نه)حاصل مصدر- وګوری پېنل-

پېنونکے:(پی-نون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېنونکی- مؤنث پېنونکې- وګوری پېنل-

پېنه:(پی-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د لرګی ښانګ- (۲)کاسه-

پېنه:(پی-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پیوند- جامو ته ټوټه اچونه- (۲)د دیوال ډانګه یا پشتی-

پېنه:(پی-نه)اسم- واحد- مؤنث- تبی- تبخے- د لرګی تبی-

پېنه:(پ-یه-نه)حاصل مصدر- وګوری پېل-

پېنبغ:(پی-نبغ)اسم- واحد- مذکر- مغه درد چې د انسان د ولو په مینځ کښې پیدا کیږی-

پېنی:(پی-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مغه بوټے چې جارو ترې جوړولے شی-

پېونکے:(پ-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېونکی- مؤنث پېونکې- وګوری پېل-

پېونه:(پ-یه-ده-نه)حاصل مصدر- خرڅونه- مال ساتنه- پیاینه-

پېه:(پ-یه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری پایه- (عامیانه)-

پېه:(پ-یه)اسم- واحد- مؤنث- پهه- مغه مالوچ یا ټکړه چې په خوږو سترګو ترلے شی- (عامیانه)-

پېېدل:(پ-یې-دل)مصدر لازم- پوهېدل- په خبره رسېدل- (عامیانه)-

پېېدل:(پ-یې-دل)مصدر لازم- (۱)ونه پرېکېدل- (۲)د اُبو ژوروالے معلومېدل-

پېېدلے:(پ-یې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېېدلی- مؤنث پېېدلې- وګوری پېېدل-

پېېدن:(پ-یې-دن)حاصل مصدر- وګوری پېېدل-

پېېدنګ:(پ-یې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری پېېدل-

پېېدونکے:(پ-یې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېېدونکی- مؤنث پېېدونکې- وګوری پېېدل-

پې:(پې)(۱)د پښتو د تهجی په حروفو کښې د "پ" د حرف تلفظ- (۲)پرې- پرې باندې- (عامیانه)-

پې پې:(پې-پې)اسم- واحد- مؤنث- (د ماشومانو په ژبه) قمیص- خت- خلکی- د پېپنی نه مشتق- (غالباً)-

پېپنی:(پېپ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کرته- قمیص- خت- خلکی- د ارتو لستونو قمیص-

پېتر:(پې-تر)اسم- واحد- مذکر- د پېتی تحقیری شکل- ډېره نرمه خټه-

پېتی:(پې-تی)اسم- واحد- مؤنث- پاتی- پیاتی- پات-

پېتی:(پې-تی)اسم- واحد- مؤنث- د اسپنی مغه نرۍ پلنه ټوټه چې سامان پکښې ترلے کیږی-

پېټ:(پېټ)اسم- وګوری پرومبه-

پېټ:(پېټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېټ- لعنت- پېغور- (۲)مرکز- بالکل- (۲)پېټی- پشتاره- بوج-

پېټار:(پې-تار)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم سر لرونکې د بانس وغیره ټوکری- (۲)لویه خله لرونکې یوه ټوکری چې عام طور سره د مارانو د پاره پکاریږی- (۳)لویه کېږه-

پېټار خلے:(پې-تار-خ-لے)اسم صفت- ستر خلے- لویه خله لرونکے-

پېټاوے:(پې-تا-وے)اسم صفت- واحد- مذکر- کېږور- ډېر خور-

پېټک:(پې-تک)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ناوې مخ کتنه یا څرګندونه- (۲)د غور اوتندی تر مینځه اچولے کېدونکے کالے- (۲)د ماشوم د پیدائش په موقع زرکېدونکې تحفه-

پېټکے:(پې-ټ-کے)اسم- واحد- مذکر- پوټکے- پوستکے- پوټخے- پوټ- پټ- ګوړے- څرمن- جمع پېټکی-

پېټل:(پې-ټل)مصدر- لعنت ملامت کول- بې عزته کول- پېغور زرکول-

پېټلے:(پې-ته-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېټلی- مؤنث پېټلې- وګوری پېټل-

پېټن:(پې-ټن)حاصل مصدر- وګوری پېټل-

پېټن:(پې-ټن)اسم- واحد- مذکر- کرکه- شکایت- نفرت-

پېټنه:(پې-ته-نه)حاصل مصدر- وګوری پېټل-

پېټو:(پې-ټو)اسم صفت- زیات خور- ډېر خوراک کونکے- کېږور- (م- هندی)-

پېټو:(پې-تو)اسم- واحد- مذکر- پېټی- (افغانستان)-

پېټوار:(پېټ-وار)اسم- واحد- مذکر- وګوری پېټار-

پېټوارے:(پېټ-وا-رے)اسم صفت- پانړی- پنړی- پنړوکمار- قلی-

مزدورکار- د پنېړونو د وچتولو کار کونکے-

پېټه:(پې-ټه)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو غټ او غنډ کدو چې حلوا ترې جوړیږی- (۲)د خناورو لری کولمې وغیره- (۲)موړ- (اسم صفت)- (افغانستان)- (م- هندی)-

پېټه کدو:(پې-ټه-ک-دو)اسم صفت- واحد- مذکر- پېټه غنډ کدو- د شودو کدو- پېټه-

پېټه مار:(پې-ټه-مار)اسم- واحد- مذکر- د پېټې خرڅونکے قصاب-

پېټ مېټ:(پېټ-مېټ)اسم- واحد جمع- مذکر- لعنت ملامت- پېغور-

پېټېمو:(پېټ-ټے-مو)کلمهٔ نفرت- لعنت- ملامت- پېټ ټے مو- (م- هندی)-

پېټی:(پې-ټی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)کمر بند- هغه کمر بند چې سپایان پرې ملا تړی- (۲)د فوځ او پولس د ملازمینو د وردی هغه ټوکے چې دوی پرې ملا تړی او په ولو ې کرځوی- (۲)د لرګی یا ګټې نه جوړه صندوقچه- (۴)د کارتوسو ګردنی-

پېټے:(پې-ټے)اسم- واحد- مذکر- پنډ- بوج- بار- جمع پېټی-

پېجاؤ:(پې-جاؤ)اسم- پاک- صفا- اچه- پچاؤ- پاکیزه- مؤنث پېجاوه- جمع مؤنث پېجاوې-

پېجاوول:(پې-جا-وه-ول)مصدر متعدی- اچه کول- پاکول- صفا کول- پاکیزه کول-

پېجاوون:(پې-جا-وه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پېجاوول-

پېجاوونکے:(پې-جا-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېجاوونکی- مؤنث پېجاوونکې- وګورئ پېجاوول-

پېجاوونګ:(پې-جا-وه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پېجاوول-

پېجاوونه:(پې-جا-وه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېجاوول-

پېجاوېدل:(پې-جا-وې-دل)مصدر لازم- اچه کېدل- صفا کېدل- سوتره کېدل- پاکیزه کېدل- پاکېدل-

پېجاوېدن:(پې-جا-وې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېجاوېدل-

پېجاوېدنګ:(پې-جا-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېجاوېدل-

پېجاوېدنه:(پې-جا-وې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېجاوېدل-

پېجاوېدونکے:(پې-جا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېجاوېدونکی- مؤنث پېجاوېدونکې- وګورئ پېجاوېدل-

پېجاوېدۀ:(پې-جا-وې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پېجاوېدل-

پېچ مخے:(پېچ-مۀ-خے)اسم صفت- پړ مخے- بدمخے- بښانسته- خلالے-

پېجو:(پې-جو)اسم- واحد- مذکر- پېجاؤ- پاک- پاکیزه- ستره- سپېځلے- سوتره- مقدس-

پېچ:(پېچ)اسم- (۱)زل- تاؤ- (۲)د ګېډې درد- مروړ- پېچش- نس خوږے- (ش- فارسی، هندی)-

پېچ:(پېچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه رخدار مېخ چې په سر کښې ې د تاوولو ځائې جوړ وی- (۲)د مشین پرزه- (۲)چابی- کنجی- نوسے- پلے- (۴)د مېنچو جوړولو پېکو- جمع پېچونه-

پېچ:(پېچ)اسم- سرکشی- تاوېدنه- (م- فارسی پېچیدن)-

پېچاپېچ:(پې-چا-پېچ)اسم صفت- (۱)تاؤ راتاؤ- (۲)کلکوتی- کورکوتی- کوړکوتی- ول په ول- (م- فارسی)-

پېچان:(پې-چان)اسم صفت- تاؤ راتاؤ- کلکوتی- ول په ول- پېچاپېچ- (م- فارسی)-

پېچان پېچان:(پې-چان-پې-چان)اسم صفت- کاږۀ واږۀ- تاو را تاؤ- (م- فارسی)-

پېچ پلے:(پېچ-پ-لے)اسم- واحد- مذکر- په غنمو کښې راټوکېدونکے پلی دار واښۀ- مشنګے-

پېچتاؤ:(پېچ-تاؤ)اسم- واحد- مذکر- پېشتو- پېچتو- پېچتاب- پېچکش- پېچکښ- د مېخ د ټینګولو او تاوولو آله- (افغانستان)-

پېچس:(پې-چس)اسم- واحد- مذکر- پېچش- د ګېډې مروړ- په لوئ اودس ماتی کښې د رمې تللو مرض-

پېچش:(پې-چش)اسم- وګورئ پېچس-

پېچک:(پې-چک)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېروتې- هغه بوټے چې په نورو ونو بوټو خېژی- (۲)د ښځو د سر تړلو رومال-

پېچکس:(پېچ-کس)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې پېچونه پرې تاوولے شی- (م- هندی)-

پېچکش:(پېچ-کش)اسم- واحد- مذکر- د پېچونو د تاوولو او ټینګولو آله- پېچکس- جمع پېچکشونه- (م- فارسی)-

پېچکښ:(پېچ-کښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېچکس- جمع پېچکښونه-

پېچ کولمه:(پېچ-کول-مه)اسم- واحد- مؤنث- پچ کولمه- لویه کولمه- د خناورو هغه کولمه چې فضله مواد پرې راوځی-

پېچ کر:(پېچ-کر)اسم- څوک چې پېړې تاوهی- د نان بایانو سره د پېړی تاوولو نوکر-

پېچل:(پې-چل)مصدر متعدی- تاوول- غښتل- پېچ ورکول-

پېچلره:(پېچ-ل-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اخنک-

پېچلے:(پې-چۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېچلی- مؤنث پېچلې- وګورئ پېچل-

پېچ مری:(پېچ-مه-ری)اسم- واحد جمع- مؤنث- کنجکه- هغه وړه شنه مری چې د نظرماتی د پاره د ماشومانو په پښو پورې تړلے شی-

پېچ موزه:(پېچ-مو-زه)اسم- واحد- مؤنث- پچموزه- ټوقه- ملنډه- وشته- پیشاړه- جمع پېچموزې-

پېچمه:(پېچ-مه)اسم- واحد- مؤنث- ټوقه- وشته- پیشاړه- پچموزه-

پېچمے:(پې-چ-مے)اسم- واحد- مذکر- زونګه- کړنج- جامع- هغه ټکی چې پکښې لوئ مطلب په لنډو ټکو کښې بیان شوے وی-

پېچواړی:(پېچ-وا-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ اسپې دَ وروستيو پښو دَ ترلو رسی- (۲)وروستو خوا ته-

پېچومه:(پې-چو-مه)اسم- واحد- مونث- پېچومے- دَ غرهٔ پېچداره لاره-

پېچومے:(پې-چو-مے)اسم- واحد- مذکر- پېچومه- (۱)ستغ- (۲)چړانی- (۳)گران- مشکل- جمع پېچومی-

پېچونکے:(پې-چه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- تاوونکے- تاو ورکونکے- پېچونے-

پېچول:(پې-چ-وَل)مصدر- پېچل- تاوول-

پېچه:(پې-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ زنانوُ دَ غوږ دَ لاندې کمځی کړی وېښتهٔ- جمع پېچې-

پېچی:(پې-چی)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو يوه لوبه-

پېچی:(پې-چی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اړنکته- (۲)پېچدار- (۳)تاو را تاؤ- (۴)تنګ- (۵)دَ مېخونو يو قسم-

پېچيدګی:(پې-چی-ده-ګی)اسم- واحد- مؤنث- دَ پېچيده کېدو حالت- مشکل- ګرانوالے- خنړ-

پېچيده:(پې-چی-ده)اسم صفت- ګران- مشکل- (م- فارسی)-

پېچېدل:(پې-چې-دَل)مصدرِ لازم- تاوېدل- غبتلے کېدل-

پېخ:(پېخ)اسم- واحد- مذکر- زغم- برداشت- صبر- (متروک)-

پېخل:(پې-خَل)مصدر- زغمل- برداشت کول- صبر کول- حوصله کول- (متروک)-

پېخل:(پې-ځَل)مصدر- سيخل- برمه کول- سورے کول-

پېځلتوب:(پې-ځَل-توب)اسم- پاک لمنی- سپېځلتوب- پاک دامنی- دَ زناکاری نه ځان ژغورنه-

پېځلے:(پې-ځهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېځلی- مؤنث پېځلې- وُګورئ پېځل-

پېځنه:(پې-ځهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ پېځل-

پېځول:(پې-ځول)اسم- واحد- مذکر- دَ کېږدۍ يا تمبو پرده- قنات- دَ کېږدۍ وَر- (افغانستان)-

پېځونکے:(پې-ځون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېځونکی- مؤنث پېځونکې- وُګورئ پېځل-

پېځه:(پې-ځه)اسم صفت- واحد- مذکر- بې ښې توښې سړے-

پېخه:(پې-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زغم- صبر- برداشت- (۲)تقدير- قسمت- برخه- (متروک)-

پېخ:(پېخ)اسم صفت- واحد- مذکر- پوخ- پوخنها- پخنے- پخنے- دَ عمر او تجربې نه زياته هوښياری ښوونکے-

پېخاړه:(پې-خا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پشاړه- دَ ګډو بزو وُچې پچې چې دَ لم نه تر پښو پورې پهٔ وېښتو پورې نښتې وی- جمع پېخاړې-

پېخال:(پې-خال)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ مرغانو فضله- (م- فارسی)-

پېخر:(پې-خَر)اسم صفت- بې خرته- ډېر زيات- پرېمان- پرېوان- کافی-

پېخل:(پې-خَل)مصدر- بيمار خولې کول- خولې راوستل-

پېخلے:(پې-خهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېخلی- مؤنث پېخلې- وُګورئ پېخل-

پېخنه:(پې-خهٔ-نه)حاصل مصدر- وُګورئ پېخل-

پېخونکے:(پې-خُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېخونکی- مؤنث پېخونکې- وُګورئ پېخل-

پېدا:(پے-دا)صفت- (۱)ښکاره- ځرګند- جوت- (۲)زېږېدلے- (۳)بيامونده (دَ ورک ځيز)- (۴)بيا موندلے شوے (ورک ځيز)- (م- فارسی)-

پېدا ګير:(پے-دا-ګير)اسم- (۱)مال پېدا کونه- (۲)ټګ- (۳)پهٔ فرېب مال پېدا کونکے- (دوېمه او درېمه معنی کښې صفت)-

پېداوار:(پے-دا-وار)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)دَ پټی يا باغ حاصلات وغېره- (۲)امدن- حاصل- ګټه- (۳)نتيجه-

پېداواری:(پے-دا-وا-ری)اسم- واحد/جمع- مذکر- پېداوار ورکونکے-

پېداوښ:(پے-دا-وښ)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)پېداوښت- پېدائش- مخلوق- (۲)بود- امدن- ګټه- (عاميانه)-

پېداوښت:(پے-دا-وښت)اسم- واحد/جمع- مذکر- مخلوق- مخلوقات- زېږېدلی ځيزونه-

پېداوېدل:(پے-دا-وې-دَل)مصدرِ لازم- موندل- موندلے کېدل- دَ حاصلاتو پهٔ حېثيت لاس ته راتلل-

پېدائش:(پے-دا-ئِش)اسم- پېدا کېدنه- زېږېدنه- (م- فارسی)-

پېدائشی:(پے-دا-ئِ-شی)اسمِ صفت- پېدائش سره متعلق- قدرتی- طبعی- فطرتی- (م- فارسی)-

پېدائښ:(پے-دا-ئِښ)اسم- وُګورئ پېدائش-

پېدائښت:(پے-دا-ئِښت)اسم- واحد/جمع- مذکر- وُګورئ پېدائش-

پېدل:(پے-دل)اسم- (۱)پلے- پياده- پهٔ خپلو پښو- (۲)دَ شطرنج پهٔ لوبه کښې کمزورې مهره- (۳)پياده لښکر-

پېډ:(پېډ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خطونو ليکلو مخصوصه کاپی- (۲)دَ ځنو ځيزونو دَ پکولو دَ پاره دَ کپړې، مالوچ يا داسې بل ځيز برتی- (۳)دَ مهر لګولو دَ سيامی ډبے- (م- انګريزی)-

پېډل:(پے-ډل)اسم- واحد- مذکر- دَ سائيکل دَ پښې اېښو ځائ چې پهٔ پښه دَ حرکت ورکولو پهٔ نتيجه کښې سائيکل حرکت کوی- (م- انګريزی)-

پېر:(پېر)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوړلک- دور- چکر- ګردش- (۲)انداز- جمع پېرونه-

پېرانے:(پې-را-نے)اسم صفت- پېريانے- پېريانو نيولے- (عاميانه)- جمع پېرانی-

پېرانه:(پې-را-نه)اسم- پليانه- هغه ډبه چې قُلبه پرې ګانې چورلوی-

پېرختونے:(پېر-خه-تو-نے)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پېروته- پروته- پېچک-

زبر "(غ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ه (ز-ړه)، هٔ (ډو-بې-دهٔ)

پېرخته- (افغانستان)-

پېرخته:(پېر-خه-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېرختونے-

پېړ:(پېړ)اسم صفت- پېړ- غټ- مضبوط- (عاميانه)-

پېړتوب:(پېړ-توب)اسم- پېړتوب- مضبوطوالے- غټوالے- پېړوالے-
پېړوالے-

پېړوالے:(پېړ-وا-لے)اسم- وګورئ پېړتوب-

پېرزو:(پېر-زو)اسم صفت- (۱)سود- پرزو- پېرزوينه- (۲)نېکه خوښه- نېک
خواهش- مينه-

پېرزوينه:(پېر-زو-يۀ-نه)اسم- پېرزو کېدنه- سود- تسلي- مينه- دَ زړۀ نېک
خواهش-

پېرشوني:(پېر-شو-ني)اسم- واحد- مؤنث- شينخه- دَ سر دَ وېښتو لار-

پېرکے:(پې-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- بوراني- دَ قروتو وغېره نه
جوړېدونکے دَ خوراک يو څيز-

پېرګر:(پېر-ګر)اسم- واحد- مذکر- پېښمار- پېرکار- تقليد کونکے- پېښې
کونکے-

پېرل:(پې-رل)مصدر- بوتل- اُبدل- اوبل- بتل- وودل- پۀ بوڼ کټ جوړول-

پېرل:(پې-رل)مصدر- پېرودل- پۀ بيعه اخستل- رانيول-

پېرلے:(پې-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېرلي- مؤنث پېرلې-
وګورئ پېرل-

پېرمخے:(پېر-مۀ-خے)اسم صفت- پېَ مخے- ښائسته- ښکلے- ړولے- (عام
طور سره دَ نارينه دَ پاره استعمالېږي)- جمع پېرمخي- (عاميانه)-

پېرنګ:(پې-رنګ)اسم- واحد- مذکر- فرنګ- فېرنګ- پېرنګے- انګرېز- دَ
برطانيې وسېدونکے- مؤنث پېرنګۍ- (م- فرانسيسي)-

پېرنګنه:(پې-رنګ-ګۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پېرنګی مؤنث- وګورئ
پېرنګے-

پېرنګواله:(پې-رنګ-وا-له)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پېرنګی دَ حکومت
زمانه- (۲)دَ انګرېزانو خوئ-

پېرنګی:(پې-رنګ-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ پېرنګی مؤنث- وګورئ
پېرنګے-

پېرنګے:(پې-رنګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېرنګ- جمع پېرنګيان-
جمع مؤنث پېرنګېې-

پېرنه:(پې-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېرل-

پېرو:(پې-رو)اسم- واحد- مذکر- پيرو- فيل مرغ- پيتے- خرتمي چرګ-

پېرو:(پې-رو)اسم- واحد- مذکر- پېروکار- پېروي کونکے- مريد- تقليد
کونکے- پس رو- جمع پېروان- (م- فارسي)-

پېروان:(پېر-وان)اسم- واحد- مذکر- پربوان- انول- اُبنره-

پېرونون:(پېر-و-تون)اسم- واحد- مذکر- يو قسم واښۀ-

پېروته:(پېر-رۀ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېرختونے-

پېروتي:(پېر-وَ-تي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پېرختونے-

پېروخې:(پې-رو-خې)اسم- واحد- مذکر- غلبېل- چاڼ- دَ تېيم يا دَ سلورو
وغېره مغه لوښے چې اوړۀ يا نور داسې څيزونه پرې چاڼولے شي-

پېرود:(پې-رود)اسم- بيعه- خريد- (افغانستان)-

پېرودل:(پې-رو-دل)مصدر- اخستل- خريد کول- بيه کول- پۀ قيمت رانيول-

پېرودن:(پې-رو-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېرودل-

پېرودنګ:(پې-رو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېرودل-

پېرودنه:(پې-رو-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېرودل-

پېرودونکے:(پې-رو-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېرودونکي-
مؤنث پېرودونکې- وګورئ پېرودل-

پېرودے:(پې-رو-دے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېرودي- مؤنث
پېرودې- وګورئ پېرودل-

پېرورژلے:(پې-رور-ژ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- پرارژلے- پرهرژلے-
پراري- زخمي- ټپي- جمع پېرورژلي-

پېروړه:(پېر-وَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- درشل- درسال-

پېروړه:(پې-رو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېروزه- (افغانستان)-

پېروزه:(پې-رو-زه)اسم- واحد- مؤنث- فېروزه- يو شين رنګے قيمتي کانے-

پېروزي:(پې-رو-زي)اسم- برے- کاميابي- فتح- ظفر- (م- فارسي)-

پېروزے:(پې-رو-زے)اسم- صافي- ساپه- جاړن- دَ لوښو يا نور سامان دَ
صفا کولو کپړه-

پېرولي:(پې-رَ-وَ-لي)اسم مفعول- جمع- مذکر- پېرودلي- پېرلي- خرڅ کړي-

پېرون:(پې-رون)اسم- واحد/جمع- مذکر- پېرونه- پېرونے- پرېمونے-
پرېونې- ثريا- پروين- دَ اُوو ستوريو جومپک-

پېرونکے:(پې-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېرونکي- مؤنث
پېرونکې- وګورئ پېرل-

پېرونه:(پې-رو-نه)اسم- وګورئ پېرون-

پېرونې:(پې-رو-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پېرون-

پېرونه:(پې-رو-نه)اسم- واحد- مؤنث- پليانه- وګورئ پېرانه-

پېروي:(پې-رَ-وي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اطاعت- تقليد- پس روي-
پېروکاري-

پېروے:(پې-رۀ-وے)اسم- واحد- مذکر- ارياش- رش- قيماق- قيماغ- پروے-
ملائي- بالائي-

پېره:(پې-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پهره- څوکي- ساتنه- ګردش- چکر-
ګرځېدنه- (۲)وار- ځل- پايه- نمبر- (۳)دَ سوداګري دَ مال يو خوا ته يو
ځل زړنه- (مصدرونه کول، لګول، لګېدل)- (م- هندي پهره)-

پېره دار:(پې-ره-دار)اسم صفت- پېره ورکونکے- څوکيدار- پهره دار- پهرو
دار- (ش- فارسي)-

پېره داري:(پې-ره-دا-ري)اسم- دَ پېرې ورکولو حالت يا پېښه- وګورئ

پېره دار-

پېريان:(پېر-يان)اسم- جمع- مذکر- د "پېرے" جمع-

پېريان اَبۀ:(پېر-يان-اَ-بۀ)اسم- سراب- د ګرمۍ پۀ موسم کښې د سختۍ ګرمۍ لۀ کبله بۀ شکه کښې پۀ نظر راتلونکې اَبۀ- (افغانستان)-

پېريان ړولی:(پېر-يان-ړو-لی)اسم- پېريان وړولے- شېدې پۍ- شوده پۍ- يو قسم بوټے چې پاڼې ئې پۍ لري-

پېريان کټ:(پېر-يان-کټ)اسم- يو قسم څلور ګټيز کاڼے چې پۀ ځنو غرونو کښې موندلے شي- (افغانستان)-

پېريان ګل:(پېر-يان-ګل)اسم- يو قسم غرنيز بوټے- (افغانستان)-

پېريان وړولے:(پېر-يان-وړو-لے)اسم- وګورئ پېريان ړولی-

پېريانے:(پېر-يا-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)جندی- جني- پېريانو نيولے- هغه څوک چې پېريان پرې ناست وي- (۲)اوتر-

پېربدل:(پې-رې-دل)مصدر لازم- پۀ قيمت اخستے کېدل- بيه کېدل- خرڅېدل- (افغانستان)-

پېربدلے:(پې-رې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېربدلی- مؤنث پېربدلې- وګورئ پېربدل-

پېربدن:(پې-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېربدل-

پېربدنۀ:(پې-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېربدل-

پېربدونکے:(پې-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېربدونکی- مؤنث پېربدونکې- وګورئ پېربدل-

پېربدۀ:(پې-رې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ پېربدل-

پېرے:(پې-رے)اسم- واحد- مذکر- پرے- جن- پۀ نظر نۀ راتلونکے مخلوق- جمع پېريان-

پېړ:(پېړ)اسم صفت- مضبوط- غټ- پنډ-

پېړ:(پېړ)اسم- (۱)د لرګی لنګری- (۲)د غنمو سپين بوس- (۳)پۀ ګاڼۍ کښې د ګنی ورکولو کار-

پېړپنجه:(پېړ-پن-جه)اسم- واحد- مؤنث- پړپنج- جګړه- تکرار- جمع پېړپنجې-

پېړته:(پې-ړۀ-ته)اسم- (۱)انمرخاتۀ- د کوړته ضد- (۲)پورته- پاس-

پېړزه:(پېړ-زه)اسم- جمع- مؤنث- د خاررو ډېرۍ- غُنډۍ- ډېرۍ- د غرۀ سر- څوکښۍ- هغه غرګی چې د غرۀ لۀ سره را بېله شوې وي- جمع پېړزې-

پېړغو:(پېړ-غو)اسم- واحد جمع- مذکر- پرغو- پورغو- شريکه تلبه-

پېړغوړ:(پېړ-غوړ)اسم صفت- پېړغوړے- غټ غوږونه لرونکے-

پېړغوړے:(پېړ-غو-ړے)اسم صفت- غټ غوږونه لرونکے- جمع پېړغوړي-

پېړمار:(پېړ-مار)اسم صفت- پېړ کونکے- پۀ ګاڼۍ کښې د ګنی ورکولو کار کونکے- جمع پېړماران-

پېړمن:(پېړ-من)اسم صفت- سست- لټ- ناراسته- (افغانستان)-

پېړمير:(پېړ-مير)اسم صفت- غټ پټ- غټ کټ-

پېړو:(پې-ړو)اسم- واحد جمع- مذکر- د شپانۀ يا اجير مزدوري- (افغانستان)-

پېړوالے:(پېړ-وا-لے)اسم- څربښت- چاق والے- غټوالے- سختوالے- مضبوطي-

پېړوده:(پې-ړو-ده)اسم صفت- ځير- سخت-

پېړول:(پې-ړه-ول)مصدر- غټول- سختول- مضبوطول-

پېړه:(پې-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زغاله- ځوغاله- ځغاله- د اخښلی شوو اوړو يو خاص مقدار چې روټۍ ترې پخولے شي- (۲)پېړه کچالو- (۳)پړسېدلے- (صفت)- (۴)شپېړه- يو قسم مټانی- جمع پېړې-

پېړی:(پې-ړی)اسم- واحد- مذکر- پېړمار- پېړ کونکے-

پېړېدل:(پې-ړې-دل)مصدر- غټېدل- مضبوطېدل- پېړېدل-

پېړېدنه:(پې-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېړېدل-

پېړېدونکے:(پې-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېړېدونکی- مؤنث پېړېدونکې- وګورئ پېړېدل-

پېړۍ:(پې-ړۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)د ناستې کټولی يا کټکے- (۲)پۀ نوارو يا پۀ بوټو بوټلې شوې د ناستې چوکۍ-

پېړۍ:(پې-ړۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- صدی-

پېز:(پېز)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)بېز- د "بستن" نه مشتق- لاحقه چې د چېزولو پۀ معنو کښې راځي- (۲)ګنډون- رفو- پېوند- پنځړک-

پېزار:(پې-زار)اسم- واحد- مذکر- څپلی- پڼې- کوښې- بوټان- پۀ پښو کښې د اچولو څيز- جمع پېزارونه-

پېزر:(پې-زر)اسم- واحد جمع- مذکر- لوېشت قدرې وچتېدونکے يو خړرنګے بوټے- (افغانستان)-

پېزر:(پے-زر)اسم- واحد جمع- مذکر- يو قسم کاڼے چې مرڼکی ترې جوړيږي- (افغانستان)-

پېزکے:(پې-زه-کے)اسم- واحد- مذکر- پيازکے- يو خودرو بوټے- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ پيازکے-

پېزل:(پې-زل)مصدر- (۱)چېول- (۲)پېوندول- مرمت کول- رفو کول- پنځړک کول- (۳)پوزے يا انډېرے ازبدل-

پېزل:(پې-زل)مصدر- (۱)پربکول- شلول- دوه ټکړې کول- (۲)صفا کول- چېول-

پېزلے:(پې-زۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېزلی- مؤنث پېزلې- وګورئ پېزل-

پېزن:(پې-زن)حاصل مصدر- وګورئ پېزل-

پېزنګ:(پې-زنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېزل-

پېزنه:(پې-زۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېزل-

پېزو:(پې-زو)اسم- واحد- مؤنث- څوکه- څوکښۍ- د غرۀ څوکه-

پېزو:(پې-زو)اسم صفت- پوزه ور- پوزمیر-

پېزوان:(پېز-وان)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پوزې یو پسول- (۲)د خناورو په پوزه کښې اچولے کېدونکے پړے- (۳)د پوزې خلے- پزېر- (۴)پېزواندے- (۵)د پنجې دار پېزار هغه تسمه چې د دوؤ ګتو منځ کښې راځي- (۶)د بوکې هغه حصه چې پړی پورې تړلے شي- (۷)د چاننګ یا کوزې د کشکول یا سُنت زنځیر- (۸)هغه غابنور لرګے چې د سخی په خلهٔ ې دې د پاره تړلے وی چې مور ونهٔ روی- پېزواند-

پېزواند:(پېز-واند)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېزوان-

پېزواندے:(پېز-وان-دے)اسم صفت- (۱)پېزواني- پېزواني شوے خارزے- (۲)د پنجې دار پېزار هغه تسمه چې د دوؤ ګتو په مېنځ کښې راځي-

پېزوانګ:(پېز-وانګ)اسم- واحد/جمع- مذکر- د پېزار هغه تسمه چې د دوؤ ګتو په مېنځ کښې راځي- (افغانستان)-

پېزواني:(پېز-وا-ني)اسم صفت- (۱)هغه خناور چې پېزوان پکښې واچولے شي- (۲)مطیع- (کول مصدر)-

پېزوانۍ:(پېز-وا-نۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)هغه جینۍ چې پېزوان ې اچولے وی- (۲)محبوبا-

پېزوانے:(پېز-وا-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې د هغهٔ په ذریعه د یوې رزن د جغ سره تړلے شي-

پېزوند:(پېز-وند)اسم- واحد- مذکر- پېزوان-

پېزونکے:(پې-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېزونکي- مؤنث پېزونکې- وګورئ پېزل-

پېزه:(پې-زه)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مسلسل بول- بولک- هغه بیماری چې تشې متیازې پکښې بې لهٔ ارادې څڅیږی- (افغانستان)-

پېزه:(پې-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پوزه- د غرهٔ څوکه- (۲)تاج- (افغانستان)-

پېزی:(پې-زی)اسم صفت- جینجړ- مړاوے- مړجینګ- شیته-

پېزی:(پې-زی)اسم- واحد- مؤنث- هجه- هځه- جمع پېزیو-

پېزیتوب:(پې-زی-توب)اسم- د پېزی کېدو حالت- مړاویتوب-

پېزېدل:(پې-زې-دل)مصدر لازم- مړاوے کېدل- شیته کېدل- پېزی کېدل- (افغانستان)-

پېزېدن:(پې-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېزېدل-

پېزېدنګ:(پې-زې-دنګ)حاصل مصدر- زګورئ پېزېدل-

پېزېدنه:(پې-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېزېدل-

پېزېدونکے:(پې-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېزېدونکي- مؤنث پېزېدونکې- وګورئ پېزېدل-

پېزېدهٔ:(پې-زې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پېزېدل-

پېزی:(پې-زی)اسم- جمع- مؤنث- هجه- هځه- په تکو- په جوړ- په زور زبر- (کول مصدر)- جمع پېزیو-

پېږ:(پېږ)اسم- پوړنه- چړکاؤ کونه- (خاص طور سره د عطرو)-

پېژاند:(پې-ژاند)اسم صفت- (۱)پېژند- واقف- اشنا- بلد- (افغانستان)- (۲)مشهور- پېژندلے-

پېژاندګلو:(پې-ژاند-ګه-لو)اسم- مؤنث- پېژندګلو- پېژندګلون- اشنائي- اشنایا- خبرېدنه-

پېژاندهٔ:(پې-ژان-دهٔ)اسم- (۱)واقفیت- بلدتیا- آشنائي- پېژندګلي- (۲)ماضی مطلق لهٔ "پېژندل"-

پېژندګلو:(پې-ژند-ګه-لو)اسم- پېژندګلي-

پېژندګلوی:(پې-ژند-ګل-وی)اسم- مؤنث- پېژندنه- پېژندګلي- پېژندون- واقفیت- بلدتیا- تعارف-

پېژندګلي:(پې-ژن-ګه-لي)اسم- زګورئ پېژندګلوی-

پېژندل:(پې-ژن-دل)مصدر لازم- علم لرل- خبر لرل- شناخت لرل- واقفیت لرل-

پېژندله:(پې-ژن-دهٔ-له)اسم- پېژندنه- پېژندګلوی- پېژندګلو- آشنائي- بلدتیا- خبرېدنه-

پېژندلے:(پې-ژن-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېژندلي- مؤنث پېژندلې- زګورئ پېژندل-

پېژندن:(پې-ژن-دن)حاصل مصدر- زګورئ پېژندل-

پېژندنګ:(پې-ژن-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېژندل-

پېژندنه:(پې-ژن-دهٔ-نه)حاصل مصدر- زګورئ پېژندل-

پېژندو:(پې-ژن-دو)فعل- لهٔ "پېژندل" نه ماضی مطلق- (عامیانه)-

پېژندو:(پې-ژن-دو)اسم صفت- نامتو- مشهور-

پېژندوکے:(پې-ژن-دو-کے)اسم مفعول- واحد- مذکر- پېژندلے شوے-

پېژندون:(پې-ژن-دون)اسم- زګورئ پېژندګلوی-

پېژندونکے:(پې-ژن-دون-کے)اسم فاعل صفت- واحد- مذکر- جمع پېژندونکي- مؤنث پېژندونکې- زګورئ پېژندل-

پېژندونے:(پې-ژن-دو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع پېژندوني- مؤنث پېژندونې- وګورئ پېژندل-

پېژندونے:(پې-ژن-دو-نے)اسم صفت- اشنا- واقف- شناسا- مؤنث پېژندویه- جمع مؤنث پېژندوې-

پېژوی:(پېژ-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چچه- بلی- څنډلی-

پېړل:(پې-ړل)مصدر- (۱)پرېکول- څیرل- ټوټې کول- (۲)توږل- تراشل-

پېړلے:(پې-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېړلي- مؤنث پېړلې- زګورئ پېړل-

پېړن:(پې-ړن)حاصل مصدر- زګورئ پېړل-

پېړنه:(پې-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- زګورئ پېړل-

پېړونکے:(پې-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېړونکي- مؤنث

"ی" (څې-رل)، "ې" (مې-ره-ول)، "ۍ" (پیا-لۍ)، "ئ" (تن-دئ) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پېرونکې- وګورئ پېرل-
پېرونے:(پې-رُو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېروني- مؤنث پېرونې- وګورئ پېرل-
پېسټری:(پېسټ-ری)اسم- واحد- مؤنث- لۀ مېدې، چینو وغېره نه جوړه یو قسم دَ بېکری مټهائی- جمع پېسټری- (م- انګریزی)-
پېسړ(پې-سړ)اسم- واحد/جمع- مذکر- بدرنګ- بدمخے- بدشکله- سخامخے-
پېسمے:(پې-سه-مے/پېس-مے)اسم- واحد- مذکر- پرشمے- پېش نمے- پرشمے- جمع پېسمي-
پېسه:(پے-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یوه زړه پاکستانی او هندوستانی سکه چې دَ روپی څلور شپېتمه حصه وه- (۲)دَ پاکستان او هندوستان سکه چې دَ روپی سلمه حصه وی-
پېسه چود:(پے-سه-چود)اسم صفت- وګورئ پېسه چوکے- (عامیانه)-
پېسه دار:(پے-سه-دار)اسم صفت- پېسه لرونکے- مالدار- دولتمند- جمع پېسه داران- مؤنث پېسه داره- جمع مؤنث پېسه دارې-
پېسه دوست:(پے-سه-دوست)اسم صفت- (۱)پېسې سره مینه لرونکے- (۲)بخیل-
پېسه دوستي:(پے-سه-دوس-تي)اسم- دَ پېسه دوست جوړېدو حالت-
پېسه چوکے:(پے-سه-چو-کے)اسم صفت- شوم- بخیل- کنجوس- پۀ پېسه مئین- هغه څوک چې پۀ چوکه چوکه پېسه لګوی-
پېش:(پېش)اسم- واحد- مذکر- پېښ- ضمه- هغه اعراب چې دَ " " پۀ علامت څرګندیږی او دَ نیم واو اواز ورکوی-
پېش:(پېش)متعلق فعل/صفت- ېېښ- وړاندې- دوڅار- مخامخ-
پېشاب:(پې-شاب)اسم- واحد/جمع- مذکر- تشې موتیازې- (م- فارسی)-
پېش امام:(پېش-ا-مام)اسم- واحد- مذکر- دَ نمانځۀ امام- دَ نمانځۀ امامت کونکے- (م- فارسی)-
پېش امد:(پېش-آ-مد)اسم- سلوک- رویه- راشه درشه- رفتار- وضع- چال چلند- (م- فارسی)-
پېشانه:(پې-شا-نه)اسم- (۱)ښانسته کور- ښکلے کور- (۲)ګودام- پستو- پسخانه-
پېشانه خونه:(پې-شا-نه-خو-نه)اسم- واحد- مؤنث- اندرونی کمره- جمع پېشانې خونې-
پېش باده:(پېش-با-ده)اسم- پیناکه- پینه غله- پوچې دانې- دَ رشې لکی- هغه خال خال دانه لرونکی دَ غنمو یا اُربشو بوس چې مالکان يې ناظرانو یا کسب ګرو ته ورکوی-
پېش بند:(پېش-بند)اسم- واحد- مذکر- هغه نوار یا تسمه چې دَ اس دَ تانګ او دَ ولونې پۀ مېنځ کښې اچولے شی- (م- فارسی)-
پېش بندی:(پېش-بن-دی)اسم- واحد- مؤنث- دوراندېشی- بندوبست- ترتیب- سرشته- احتیاطی تدبیر- انتظام- (م- فارسی)-
پېش بین:(پېش-بین)اسم صفت- دوراندیش- دورفکره- متوجه- عاقبت اندېش- (م- فارسی)-
پېش بینی:(پېش-بی-نی)اسم- پام- فکر- دوراندېشی- احتیاط-
پېشترے:(پېش-تۀ-رے)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګورئ اخنګ-
پېشتول:(پېش-ته-ول)مصدر- پۀ تېزه منډه مجبورول-
پېشتون:(پېش-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ پېشتول-
پېشتونګ:(پېش-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پېشتول-
پېشتونه:(پېش-ته-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېشتول-
پېشتونکے:(پېش-ته-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېشتونکی- مؤنث پېشتونکې- وګورئ پېشتول-
پېشته:(پېش-ته)اسم- واحد- مؤنث- تېزه منډ- جمع پېشتې-
پېشتېدل:(پېش-تې-دل)مصدر لازم- پۀ تېزه منډه کېدل-
پېشتېدن:(پېش-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېشتېدل-
پېشتېدنګ:(پېش-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېشتېدل-
پېشتېدونکے:(پېش-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېشتېدونکی- مؤنث پېشتېدونکې- وګورئ پېشتېدل-
پېشتېدنه:(پېش-تې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېشتېدل-
پېشتېدۀ:(پېش-تې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ پېشتېدل-
پېش خانه:(پېش-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تېروری- دَ کوچیانو هغه مالونه چې دَ کوچ نه مخکښې استولے شی- (۲)دَ مکان وړومبی کمره-
پېش خبری:(پېش-خب-ری)اسم- واحد- مؤنث- مخکښې خبرېدنه- پېشګوئی-
پېش خوره:(پېش-خو-ره)اسم صفت- پۀ قرض پور ژوند تېرونکے-
پېش خوره:(پېش-خو-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه یوه اندازه غله چې دَ راتلونکی فصل نه مخکښې دَ کمې غلې پۀ ځایَ پۀ بیعه واخستے شی او تر نوی فصل پورې خوړلے کیږی- جمع پېش خورې-
پېش خوړ:(پېش-خوړ)اسم صفت- پۀ قرض ګوزاره کونکے- مؤنث پېش خوړه- جمع مؤنث پېش خوړې-
پېش خېمه:(پېش-خې-مه)اسم- (۱)هغه خېمه چې دَ اُمراؤ دَ رسېدو نه مخکښې ودرولے شی- (۲)دَ فوځ هغه سامان چې دَ کوچ نه مخکښې لېږلے شی- (۳)دَ هر کار لۀ واقع کېدو نه مخکښې ښکاره کېدونکې علامه- (م- فارسی)-
پېش دار:(پېش-دار)اسم- مرږې- دَ فوځ هغه دسته چې مخکښې حرکت کوی- (م- فارسی)-
پېش دست:(پېش-دست)اسم صفت- (۱)چُست- تېز- چالاک- (۲)مددګار- کومک کونکے- (۳)پۀ منډه کښې چابک- (۴)دَ واقعاتو لۀ صادرېدو نه مخکښې حمله کونه- (م- فارسی)-
پېش دستی:(پېش-دس-تی)اسم- (۱)چالاکی- تېزی- چُستی- چابکی- (۲)مرسته- کومک- (۳)بریالیتوب- (۴)پۀ منډه کښې وړاندې کېدنه-

"زبر"(غ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "زېر"(ک-تاب)، "پېش"(نو-کا-ره)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-ہې-دۀ)

(۵)مخکښې حمله کونه- (م- فارسي)-

پېش رس:(پېش-رس)اسم- هغه مېوه چې دَ پخېدو نه پس پهٔ اول خل بازار ته راشي-

پېش رفت:(پېش-رفت)اسم- وړاندې تلنه- ترقي- وده- (م- فارسي)-

پېش رو:(پېش-رو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مخکښې تلونکے- راهنما- رهبر- (۲- اسم)دبکه- پټکه- پهٔ خبرو کښې دَ خپل حد نه تېزي کونه- پهٔ خبرو کښې دَ سختي پهٔ وجه دَ جنګ حالات پېدا کونه- (افغانستان)- (م- فارسي)-

پېش روی:(پېش-ر-وی)اسم- مخکښې والے- وړاندې تګ- وړاندې والے- لهٔ نورو مخکښې کېدنه- سبقت- (م- فارسي)-

پېش قبضه:(پېش-قب-ضه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېش قوزه- (م- فارسي)-

پېش قدم:(پېش-قه-دم)اسم صفت- وړاندې تلونکے- وړاندې مخ ته- (م- فارسي)-

پېش قدمي:(پېش-قد-مي)اسم- پهٔ جنګ کښې مخکښې تلنه- دَ دښمن دَ پسپا کولو پهٔ ذريعه دَ جنګ مېدان کښې وړاندې تګ- جمع پېش قدمي/پېش قدمياني- (م- فارسي)-

پېش قراول:(پېش-قه-را-ول)اسم- پېش دار- دَ فوځيانو مخکښې حرکت کونکې ډله- مقدمه جېش- (م- فارسي، ترکي)-

پېش قوزه:(پېش-قو-زه)اسم- واحد- مؤنث- پېشکوزه- پېش قبضه- کجکوله- چاړهٔ- خنجر- ستوه- پېچکوزه- (م- فارسي)-

پېش کار:(پېش-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناظر- خدمتګار- (۲)پهٔ عدالتونو کښې مسلسل پېش کونکے- (م- فارسي)-

پېشکش:(پېش-کش)اسم- واحد- مذکر- ډالۍ- سوغات- تحفه- نذرانه- پېشکشي- جمع پېشکشونه- (م- فارسي)-

پېشکشي:(پېش-که-شي)اسم- وګورئ پېشکش-

پېشکي:(پېش-کي)صفت/متعلق فعل- (۱)پېشګي- ساني- بيانه- سياني- دَ وخت نه وړاندې- (۲)لهٔ وړاندې ورکړے شوے أجرت يا مزدوري-

پېشکے:(پېش-کے)اسم- واحد- مذکر- رنګروټ- جمع پېشکيان-

پېشګوني:(پېش-ګو-ني)اسم- پېش خبري- مخکښې وېنا- دَ حادثې يا واقعې دَ پېښېدو نه مخکښې دَ هغې پهٔ باره کښې اظهار کونه- جمع پېشګوي/پېشګوياني-

پېشګي:(پېش-ګي)صفت- وګورئ پېشکي-

پېشل:(پې-شل)مصدر- يخول- سړول- دَ کاشوغې يا بل داسې کوم څيز پهٔ ذريعه ګرم څيز يخول-

پېشلره:(پېش-لهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اخنګ-

پېشلمے:(پېش-ل-مے)اسم- واحد- مذکر- پېش منے- پېشنمے- پرشمے- پېشمے- دَ سبا دَ اذان نه مخکښې وخت- جمع پېشلمي-

پېشلے:(پې-شهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېشلي- مؤنث پېشلې- وګورئ پېشل-

پېش منډي:(پېش-من-ډي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټوټې وشتې- ملنډې- پېچموزې-

پېش منے:(پېش-مه-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېشلمے-

پېشن:(پې-شن)حاصل مصدر- وګورئ پېشل-

پېشن:(پې-شن)اسم- دَ "فېشن" مفغن- (م- انګريزي فېشن)-

پېش نامه:(پېش-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- اېجنډا- دَ څهٔ غونډې دَ بحث کولو دَ پاره وړاندې جوړ کړے شوے فهرست- (افغانستان)- جمع پېش نامې- (م- فارسي)-

پېش نمے:(پېش-نه-مے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېشلمے-

پېشنه:(پې-شهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېشل-

پېش نهاد:(پېش-ن-هاد)اسم- واحد- مذکر- درخواست-

پېشني:(پې-ش-ني)اسم صفت- واحد- مذکر- فېشني- دَ وخت او رواج سره سم ډزل ډال کونکے-

پېشوا:(پېش-وا)اسم- واحد- مذکر- راهنما- لارښونکے- جمع پېشوايان/پېشواګان-

پېشواز:(پېش-واز)اسم- واحد- مذکر- جابې- جامن- خلکۍ- تيلک- هغه ککره چې کوېدونکي يې دَ کډا پهٔ وخت اچوي- (۲)يو قسم زنانوال قميص- (م- فارسي)-

پېشوائي:(پېش-وا-ئي)اسم- رهنمائي- لار ښونه- رهبري-

پېشوبازي:(پې-شو-با-زي)اسم- (۱)خوشامندي- چاپلوسي- (۲)دَ دوؤ کسانو تر مېنځه جنګ-

پېش وپس:(پېش-و-پس)اسم- واحد/جمع- مذکر- پس و پېش- ټال مټول- وړاندې وروستو- بهانه- عذر-

پېشورز:(پېش-ورز)اسم- واحد- مذکر- جابې- جامن- خلکۍ- پېشواز- دَ کډا قميص- (افغانستان)-

پېشول:(پې-شه-ول)مصدر- (۱)وړاندې کول- پېش کول- مخکښې کول- (۲)پهٔ عدالت کښې حاضرول-

پېشولے:(پې-شه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېشولي- مؤنث پېشولې- وګورئ پېشول-

پېشون:(پې-شه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پېشول-

پېشونکے:(پې-شه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېشونکي- مؤنث پېشونکې- وګورئ پېشول-

پېشونګ:(پې-شه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پېشول-

پېشونه:(پې-شه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېشول-

پېشوي:(پېش-وي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ لرګي غټه څمڅۍ-

پېشه:(پې-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ باران نري شېبه- (۲)غونے-

(۳)پونه- (۴)خورمه- جولی- جمع پېشې-

پېشه:(پې-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کسب- چار- هنر- روزګار- (۲)عادت- خونی- (استعاره)- جمع پېشې- (م- فارسی)-

پېشه ور:(پې-شه-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- کسب ګر-

پېشه ورانه:(پې-شه-ور-را-نه)اسم- د پېشه ور سره متعلق- وګورئ پېشه ور-

پېشى:(پې-شي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حاضری- وړاندې کېدنه- (۲)په عدالت یا دربار وغېره کښې د پېش کېدو حالت او نېټه-

پېشین ګوني:(پې-شین-ګو-ني)اسم- واحد جمع- مؤنث- د څه واقعې په حقله د اول نه خبردارے ورکونه- خبر ورکونه- پېش ګوني- پېش خبری- (م- فارسی)-

پېشېدل:(پې-شې-دل)مصدر لازم- (۱)پېش کېدل- حاضرېدل- وړاندې کېدل- (۲)په عدالت، دربار یا بل کوم لوئ مقام کښې وړاندې کېدل-

پېشېدن:(پې-شې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېشېدل-

پېشېدنګ:(پې-شې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېشېدل-

پېشېدنه:(پې-شې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېشېدل-

پېشېدونکے:(پې-شې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېشېدونکی- مؤنث پېشېدونکې- وګورئ پېشېدل-

پېشېدۀ:(پې-شې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پېشېدل-

پېشى:(پې-شي)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)د پوزې نته- وره نتکی- (۲)د خرمنې امیانې-

پېښ:(پېښ)اسم- واحد- مذکر- د پښتو د نورو زېو یو اعراب- پېش-

پېښ:(پېښ)اسم صفت- حاضر- مخکښې- وړاندې شوے- پېش-

پېښاو:(پې-ښاو)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)وشته- ملنډه- ټوقه- (۲)پېښه-

پېښاوو:(پې-ښا-وو)اسم صفت- پېښوګر- ټوقی- ټوقمار- پېښې کونکے-

پېښکښ:(پېښ-کښ)اسم- واحد- مذکر- جمع پېښکښونه- وګورئ پېشکش-

پېښکښى:(پېښ-ک-ښي)اسم- واحد- مؤنث- پېشکشی- مجره- سائی-

پېښکی:(پېښ-کی)اسم صفت متعلق فعل- د وخت نه مخکښې- پېشکی-

پېښو:(پې-ښو)اسم صفت- وګورئ پېښاوو-

پېښوګر:(پې-ښو-ګر)اسم صفت- وګورئ پېښاوو-

پېښول:(پې-ښه-ول)مصدر- واقع کول- حاضرول- راوستل- رامېنځ ته کول-

پېښولے:(پې-ښه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېښولی- مؤنث پېښولې- وګورئ پېښول-

پېښون:(پې-ښه-ون)حاصل مصدر- وګورئ پېښول-

پېښونکے:(پې-ښه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېښونکی- مؤنث پېښونکې- وګورئ پېښول-

پېښونګ:(پې-ښه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پېښول-

پېښونه:(پې-ښه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېښول-

پېښه:(پې-ښه)اسم- واحد- مؤنث- ملنډه- نقل- ټوقه- جمع پېښې-

پېښه:(پې-ښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)واقعه- حادثه- (۲)تېرېدنه- چا ته ورتلنه-

پېښه مار:(پې-ښه-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پېښې کونکے- نقلی- مقلد- (۲)نقل کونکے- ټوقمار- ټوقی- پېښئ-

پېښه ماری:(پې-ښه-ما-ري)اسم- مؤنث- د پېښه مار کېدو حالت-

پېښئ:(پې-ښئ)اسم صفت- وګورئ پېښه مار-

پېښېدل:(پې-ښې-دل)مصدر لازم- حاضرېدل- واقع کېدل- مخې ته راتلل- مخې ته کېدل- څۀ واقعه پېدا کېدل- ناڅاپه په یو ځائ یا په چا تېرېدل-

پېښېدن:(پې-ښې-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېښېدل-

پېښېدنګ:(پې-ښې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېښېدل-

پېښېدنه:(پې-ښې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېښېدل-

پېښېدونکے:(پې-ښې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېښېدونکی- مؤنث پېښېدونکې- وګورئ پېښېدل-

پېښېدۀ:(پې-ښې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ پېښېدل-

پېغام:(پې-غام)اسم- واحد- مذکر- پیام- خبر- جمع پېغامونه- (م- فارسی)-

پېغامبر:(پې-غام-بر)اسم- واحد- مذکر- پېغمبر- پېغام رسونکے- قاصد- نبی- رسول- جمع پېغامبران-

پېغرنه:(پېغ-رۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پېغور- ملامت کونه او شرمونه-

پېغلتانه:(پې-غل-تا-نۀ)اسم- پېغلتوب-

پېغلتوب:(پې-غل-توب)اسم- مذکر- د پېغله کېدو حالت- پېغلتون-

پېغلتون:(پې-غل-تون)اسم- مذکر- وګورئ پېغلتوب-

پېغلټه:(پېغ-لۀ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېغلوکې- جمع پېغلټې-

پېغلچوکې:(پې-غل-چو-کې)اسم تصغیر- وګورئ پېغلوکې-

پېغلوکې:(پېغ-لو-کې)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- پېغلټه- پېغلچوکې- د پېغلې اسم تصغیر- تازه پېغله-

پېغله(پېغ-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- ناوادۀ شوې بالغه جینی- جمع پېغلې-

پېغمبر:(پې-غم-بر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېغامبر- جمع پېغمبران-

پېغمبر بوټے:(پې-غم-بر-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- یو غرنیز بوټے- جمع پېغمبر بوټی-

پېغمبرتوب:(پې-غم-بر-توب)اسم- پېغمبری- رسالت- پېغمبروالے-

پېغمبر ګل:(پې-غم-بر-ګل)اسم- واحد- مذکر- پېغمبری ګل- د زیړ رنګ ګل چې تور تور ټکی لری-

پېغمبر والے:(پې-غم-بر-وا-لے)اسم- وګورئ پېغمبرتوب-

پېغمبری:(پې-غم-به-ري)اسم- رسالت- پېغمبرتوب- د پېغمبر کېدو حالت-

پېغمبری سنت:(پې-غم-به-ری-س-نت)اسم- د ماشوم پېدائشی سنت-

پېغمبري ګل:(پې-غم-بې-ري-ګل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېغمبر ګل-

پېغور:(پې-غور)اسم- واحد- مذکر- طعنه- تانه- ملامته- بدې ردې- جمع پېغورونه-

پېغور ژن:(پې-غور-ژن)اسم صفت- مذکر- (۱)د غندنې جوګه- (۲)پېغور کونکے- مؤنث پېغور ژنه- جمع مؤنث پېغور ژنې-

پېغورول:(پې-غو-ره-ول)مصدر متعدي- پېغور ورکول- طعنه ورکول- چا ته خپل بدۀ د پېغور په توګه وریادول- ملامتول-

پېغورولے:(پې-غو-ره-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېغورولي- مؤنث پېغورولې- وګورئ پېغورول-

پېغورون:(پې-غو-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ پېغورول-

پېغورونکے:(پې-غو-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- جمع پېغورونکي- مؤنث پېغورونکې- وګورئ پېغورول-

پېغورونه:(پې-غو-ره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېغورول-

پېغورېدل:(پې-غو-رې-دل)مصدر لازم- پېغور ورکولے کېدل-

پېغولے:(پې-غو-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پوغله-

پېک:(پېک)اسم- واحد- مذکر- د نغدیت نه علاوه نور مال- جمع پېکونه-

پېک:(پېک)اسم- واحد- مذکر- کنجي- چابي- نوسے-

پېک:(پېک)اسم- واحد- مذکر- (۱)پلے- پیاده- (افغانستان)- (۲)قاصد- اُستاخے- (م- فارسي)-

پېکار:(پې-کار)اسم- جنګ- جګړه- (م- فارسي)-

پېکان:(پې-کان)اسم- واحد- مذکر- توبرے-

پېکټ:(پې-کټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بنډل- پاکټ- لفافه- (۲)تبله- ګوتې- کڅوړې- خلته- قتې- کڅوړه- (۲)ګنډه- هغه بسته چې پکښې څۀ څیز تړلے شوے او محفوظ کړے شوے وي- جمع پېکټونه-

پېکر:(پې-کر)اسم- شکل- جسم- (م- فارسي)-

پېکښ:(پې-کښ)اسم- واحد- مذکر- پېشکش- مخاړے- وړاندې کونه- ښونه- دعوت- بلنه- زرکړه- د یو څیز چا ته وړاندې وړاندې کونه-

پېکل:(پې-کل)اسم- واحد- مذکر- (۱)تناؤ- هغه پړے یا رسۍ چې وینځلې شوې جامې پرې غوړولے شي- (۲)یوه خارداره آله چې غوبل پرې کولے شي- (۲)د لوخې نه جوړ کړے هغه څیز چې په چوکه (بوزغلي) غوړولے شي- جمع پېکلونه-

پېکنکل:(پې-کن-کل)اسم- واحد جمع- مذکر- ونډې کونه- ونډ ونډ کونه- (افغانستان)-

پېکو:(پې-کو)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پاېکو- د شولو مشین- (۲)د مېنچو مشین-

پېکول:(پې-ک-ول)مصدر متعدي- (۱)ونې پرېکول- (۲)د ابو ژوروالے معلومول- د ابو تل معلومول-

پېکولے:(پې-که-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېکولي- مؤنث پېکولې- وګورئ پېکول-

پېکون:(پې-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ پېکول-

پېکونکے:(پې-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېکونکي- مؤنث پېکونکې- وګورئ پېکول-

پېکونګ:(پې-ک-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ پېکول-

پېکونه:(پې-ک-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېکول-

پېکوے:(پې-کۀ-وے)اسم- واحد- مذکر- پېوے- چونګه- برڅولے- برچکے- پېوکے- پېیکے- لۀ تارونو نه جوړه هغه پېته چې زنانه پرې د کمڅې وېښتۀ تړي-

پېکے:(پې-کے)اسم- واحد- مذکر- پیچکے- څټوکے- د تندي وېښتۀ چې د ږول د پاره ساتلي شوي وي-

پېګ:(پېګ)اسم- واحد- مذکر- د شرابو څښلو وړوکے ګلاس- (م- انګریزي)-

پېګنې:(پې-ګ-نې)اسم- واحد جمع- مؤنث- د ګېز وړې-

پېل:(پېل)اسم- واحد جمع- مذکر- پهل- اغاز- ابتدا- شروع- لاس لګونه- (ش- هندي)-

پېلا:(پې-لا)اسم- واحد- مذکر- وړومبے- اول- د انګریزي میاشتې وړومبے تاریخ- (عامیانه)- (م- هندي)-

پېلا تاریخ:(پې-لا-تا-ریخ)اسم- واحد- مذکر- د انګریزي میاشتې وړومبے تاریخ-

پېلار:(پې-لار)اسم- واحد- مذکر- پېلیار- اړ- پړده- جمع پېلارونه-

پېلامه:(پې-لا-مه)اسم- واحد- مؤنث- نښه- نښانې- علامه- جمع پېلامې-

پېلبو:(پېل-بو)اسم- واحد- مؤنث- برېښنا- ځړ- برېښ- خلق- خلا- جمع پېلبووې پېلبې-

پېلستے:(پې-لس-تے)اسم- واحد- مذکر- زلموټے- نوے بالغ شوے- جمع پېلستي- مؤنث پېلستې-

پېلغو:(پېل-غو)اسم- پروېغې- ارلچ- بدل- څاروي یا نور څۀ چا ته په بدل ورکونه چې بیا يې بدل غښتلے شي-

پېلغه:(پېل-غه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېغله- (عامیانه)-

پېلل:(پې-لل)مصدر متعدي- پېيل- پېرل-

پېلنه:(پې-لۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېلل

پېلنه:(پې-لۀ-نه)اسم- بېلتون- جدائي- بېلنه-

پېلوا:(پېل-وا)اسم- وګورئ پېلبو-

پېل وتره:(پېل-وت-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه والي چې په غوږ کښې بره اچولے شي-

پېلوخے:(پې-لو-خے)اسم- واحد- مذکر- هغه ماده چې اور پرې بلولے شي- جمع پېلوخي-

پېلودي:(پې-لو-دي)اسم صفت- مذکر- (۱)پولادي- فولادي- (۲)مضبوط- پوخ- کلک-

پېلوړ:(پې-لوړ)اسم- مذکر- (۱)زيار- کوشش- (۲)غمخوري- همدردي- (افغانستان)-

پېلوړه:(پې-لو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د کېږدۍ د غوړيو د تړلو پړے- جمع پېلوړې-

پېلوښه:(پېل-ړ-ښه)اسم- واحد- مؤنث- پېلونه- هغه پړے يا رسۍ چې د خرۀ پښې پرې تړلے شي- جمع پېلوښې-

پېلوکے:(پے-لو-کے)اسم تصغير- څټوکے- څڼېړے- زلفې- څڼې- د ويښتو څڼېړے- (۲- صفت) چې شا ته ئې پۀ څټ لوئ لوئ ويښتۀ پرېښي وي-

پېلول:(پې-له-ول)مصدر- شروع کول- پېل کول- لاس پورې کول-

پېلونکے:(پې-لون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ پېلل-

پېلونګ:(پې-له-ونګ)حاصل مصدر- (۱)وګورئ پېلول- (۲- اسم)پېلونه- تونيه-

پېلونه:(پې-له-وۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېلوښه-

پېلونه:(پې-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېلول-

پېله:(پے-له)اسم- واحد- مؤنث- پائله- پانزېب- جمع پېلې-

پېليار:(پېل-يار)اسم- وګورئ پېلار-

پېلئ:(پې-لئ)اسم- واحد- مذکر- چې تنسته ودي- جولا-

پېمال:(پے-مال)اسم- واحد/جمع- مذکر- پېشه- کسب- هنر- (افغانستان)-

پېمال:(پے-مال)اسم صفت- مذکر- وګورئ پائمال-

پېمال وال:(پے-مال-وال)اسم فاعل- مذکر- هنرمند- کسب ګر- پېشه ور- (افغانستان)-

پېمان:(پے-مان)اسم- واحد- مذکر- وعده- عهد- قول- اقرار- لوظ- جمع پېمانونه- (م- فارسي)-

پېمانه:(پې-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کنډې- د غلې دانې د پېمانه کولو لوښے- (۲)کټے- پېمانه کونه- کټے کونه- (۳)مسطر- د ناپ تول آله- (۴- صفت)- ډک- برجغ- خلې تر خلې- جمع پېمانې-

پېمانه:(پې-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- لويه ټوکرې- جمع پېمانې-

پېمانش:(پے-ما-نش)اسم- واحد- مذکر- کچ- ناپ- جمع پېمانشونه- (م- فارسي)-

پېمانشي:(پے-ما-ئ-شي)اسم صفت- (۱)د پېمانش جوګه- (۲)کچ کونکے- ناپ کونکے-

پېمانل:(پې-ما-نل)مصدر- ناپ کول- پېمل- پېميل- پېمدل-

پېمختوب:(پے-مخ-توب)اسم- مذکر- ښائست- ښکلا- ښکلے والے-

پېمخے:(پے-مۀ-خے)اسم صفت- سپين- ښائسته- ښکلے- حسين- وګورئ پېرمخے-

پېمدل:(پېم-دل)مصدر- پېمل- پېمېل- پېودل- پېمانه کول-

پېمدلے:(پېم-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېمدلي- مؤنث پېمدلې- وګورئ پېمدل-

پېمدنه:(پېم-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېمدل-

پېمرلي:(پېم-رۀ-لي)اسم- جمع- مذکر- پېرلي- پېيلي- پۀ مزي کښې پۀ قطار او ترتيب پېيلي شوي-

پېمل:(پے-مل)مصدر- وګورئ پېمدل-

پېملے:(پے-مۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېملي- مؤنث پېملې- وګورئ پېمل-

پېمنه:(پے-مۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېمل-

پېمونکے:(پے-مون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېمونکي- مونث پېمونکې- وګورئ پېمل-

پېنځه:(پېن-ځه)اسم- واحد- مؤنث- وربخله- د پرتاګۀ هغه حصه چې پښې ترې بهر ښکاري- جمع پېنځې-

پېنځه شړپ:(پېن-ځه-شړپ)اسم صفت- مذکر- (۱)هغه کس چې پېنځې وروسې راکښے شي- (۲)ناراست- سُست- لټ- جمع پېنځه شړپي-

پېنځه ور:(پېن-ځه-ور)اسم- مذکر- ارتې پېنځې لرونکے-

پېندل:(پېن-دل)مصدر- پېمدل- پېمل- پېودل- پېميل- پېمانه کول-

پېندنه:(پېن-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېندل-

پېندونکے:(پېن-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېندونکي- مؤنث پېندونکې- وګورئ پېندل-

پېنده:(پېن-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګنډه- جمع- (۲)سوبت- تريل- وړه مړی- (۳)پۀ يوۀ تالي راغنډ ناست کسان- جمع پېنډې-

پېنډی:(پېن-ډی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه کاڼے يا تيږه چې د کوټې ستن پرې ولاړه وي-

پېنغ:(پے-نغ)اسم- واحد- مذکر- قولنج- مروړ- د ګېډې سخت درد-

پېنک:(پے-نک)اسم- واحد- مذکر- د انګورو د غنچې جومپک- پېنګ-

پېنګ:(پے-نګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېنک-

پېنګو:(پېنګ-کو)اسم- (۱)زانګو- ځانګو- زانګويه- زنګوچ- پېنګه- (۲)ټال- (افغانستان)-

پېنګه:(پېنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- د غرونو مېنځ کښې اواره زمکه- جمع پېنګې-

پېنګه:(پېنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- ځانګو- زانګو- زنګوچ- جمع پېنګې-

پېنګی:(پېن-ګي)اسم تصغير- واحد/جمع- مؤنث پېنګارۍ- وړه پنګه- معمولي جمع-

پېنوبے:(پې-نو-بے)اسم- واحد/جمع- مذکر- مذي- موسوبے- (متروک)-

پېنه:(پې-نه)اسم- ملګرتيا-

پېنه:(پې-نه)اسم صفت- غټ- مضبوط- چاغ- چاق- مزے- (۲- اسم)پېره- وار- نوبت- ځل-

پېواز:(پې-واز)اسم- واحد- مذکر- (۱)پايواز- (۲)پښې ارته- د زوم سخر کره پۀ وړومبي ځل مېلمه کېدنه يا هغه زوم چې پۀ وړومبي ځل سخر کره تلے وي- (۲)د ناروغه، نظربند يا بندي د پښتنې د پاره

هسپتال يا بندی خانې ته تلونکے- (۴)هغه څوک چې په خنو ورځو د خپل ملازمتی فرائضو نه خلاص وی- (افغانستان)-

پېوازی:(پې-وا-زی)اسم- د پېواز کېدو حالت- وګورئ پېواز-

پېوچ:(پې-وچ)اسم- واحد- مذکر- رنځړه- ننځړه- کاچ- سرپ- د يوې ونې نوم- جمع پېوچونه-

پېوخته:(پے-وخ-ته)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث/مذکر- مصروف- لګيا-

پېودل:(پېو-دل)مصدر- (۱)پېرل- پېيل- (۲)په ترتيب کول-

پېودلے:(پېو-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېودلی- مؤنث پېودلې- وګورئ پېودل-

پېودن:(پېو-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېودل-

پېودنګ:(پېو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېودل-

پېودنه:(پېو-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېودل-

پېودون:(پېو-دون)حاصل مصدر- وګورئ پېودل-

پېودونکے:(پېو-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېدونکی- مؤنث پېدونکې- وګورئ پېودل-

پېودونے:(پېو-دو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېدونی- مؤنث پېدونې- وګورئ پېودل-

پېور:(پے-ور)اسم صفت- ډېر پئ ورکونکې-

پېوروے:(پېو-رهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- پېروے- ملائی-

پېوره:(پے-وهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- پئ ورکونکې- ډېر پئ ورکونکی- پېور-

پېورے:(پې-وهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- پېروے- پېوروے- ملائی- (عاميانه)-

پېوست:(پے-وست)اسم- واحد- مذکر- جُخت- متصل- خوا ته- پورې- سره- يو ځایُ- لګېدلے- (م- فارسی)-

پېوستګی:(پے-وس-ته-ګی)اسم- اتصال- تړون- (م- فارسی)-

پېوستول:(پے-وس-ته-ول)مصدر لازم- يو ځایُ کول- لګول-

پېوستون:(پے-وس-تون)اسم- يو ځایُ کېدنه- جُختېدنه- نژدې کېدنه-

پېوستون:(پې-وس-تون)اسم- د غرهٔ په مېنځ کښې چاودون-

پېوسته:(پے-وس-ته)اسم صفت- جُخت- نژدې- متصل-

پېول:(پې-ول)مصدر- (۱)څرول- پوول- (۲)پېرل- پېيل-

پېوند:(پے-وند)اسم- واحد- مذکر- (۱)جوړ- بند- ټوټه- ټانکه- پېوستون- دوه جوړونه يا ټوکی پخپل مېنځ کښې يو ځایُ کونه- (۲)تعلق- جمع پېوندونه-

پېوند:(پے-وند)اسم- واحد- مذکر- درمه- د يوې سورے لرونکے لرګے چې د ژغ سره تړلے شی- جمع پېوندونه-

پېوندګلی:(پې-وند-ګه-لی)اسم- پېوند کېدنه- يوځایُ کېدنه-

پېوندل:(پے-ون-دل)مصدر- تلل- پېمدل- پېمل- پېمېيل-

پېوندلے:(پې-ون-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېوندلی- مؤنث- پېوندلې- وګورئ پېوندل-

پېوندن:(پې-ون-دن)حاصل مصدر- وګورئ پېوندل-

پېوندنګ:(پې-ون-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ پېوندل-

پېوندنه:(پې-ون-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېوندل-

پېوندونکے:(پې-ون-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېوندونکی- مؤنث پېوندونکې- وګورئ پېوندل-

پېوندی:(پے-ون-دی)اسم صفت- (۱)پېوند شوے- ټانکه شوے- (۲)مات هډوکی سره پېوندونه- (۲)بيا ورته شوے- جوړ لګولے شوے- بيا سره وروستے شوے- (۴)هغه ونه چې پکښې قلم لګولے شوے وی-

پېوے:(پې-وے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېکوے-

پېهج:(پې-هج)اسم- واحد- مذکر- د "ساج" غندې يوه ونه چې په هندی کښې ورته "کورون" وائی-

پېهم:(پے-هم)صفت/متعلق فعل- متواتر- مسلسل- (م- فارسی)-

پېيکے:(پې-يه-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېکوے-

پېيل:(پې-يل)مصدر- پېلل- پېرل- پېودل- پېول-

پېيلے:(پې-يهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع پېيلی- مؤنث پېيلې- وګورئ پېيل-

پېين:(پې-ين)حاصل مصدر- وګورئ پېيل-

پېينګ:(پې-ينګ)حاصل مصدر- وګورئ پېيل-

پېينه:(پې-يهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ پېيل-

پېيول:(پې-يه-ول)مصدر متعدی- پوهول- پويول- (عاميانه)-

پېيولے:(پې-يه-وهٔ-لے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع پېيولی- مؤنث پېيولې- وګورئ پېيل-

پېيوے:(پې-يهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ پېکوے-

پے:(پے)اسم- (۱)تصرف- زمه- قبضه- (۲)د زمکې يو خاص مقدار- (۲)پرېکړه- قطع- (۴)لرې ژورې اُبهٔ چې پښې پکښې په زمکه لګی- (۵)پاياؤ-

پے پے:(پے-پے)صفت- ېلې ېلې-

---

"ئ" (ځی-زل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پيا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ت:(تې)حرف- تا- دَ پښتو، فارسي، عربي او اردو څلورم حرف چې دَ ابجد پهٔ حساب څلور سوه شمېر لري-

تا:(تا)اسم- دَ مخ پټولو او بیا ښکاره کولو حرکت- (دَ ماشومانو ژبه)-

تا:(تا)اسم ضمیر- واحد حاضر- جمع تاسو-

تاب:(تاب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګرمي- تاؤ- (۲)طاقت- وس- توان- (۳)غصه- قهر- کاوړ- (۴)پرق پروق- ځلا- ځلق- (۵)پېچ و خم- ول- (۶)برداشت (لرل- راوړل مصدرونه)- (م- فارسي)-

تابان:(تا-بان)اسم صفت- رڼ- ځلانده- ځلنده- ځلان- (م- فارسي)-

تاباني:(تا-با-ني)اسم- دَ تابانه کېدو حالت- روښانتیا- رڼ والے-

تابخانه:(تاب-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه مخصوص ځاې چې اور پکښې بلیږي- تاؤخانه- جمع تابخانې-

تابدار:(تاب-دار)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)تاؤ لرونکے- کوږ وږ- تاؤ راتاؤ- تَو شوے- تاؤ شوے- (۲)روښان- ځلاند- تابان- رڼ- (م- فارسي)-

تابداري:(تاب-دا-ري)اسم- دَ تابدار کېدو حالت-

تابدان:(تاب-دان)اسم- واحد- مذکر- روزن- منګ- روشندان- مګ- دروځه- بدروځه- دریځه- دَ کوټې پهٔ چت کښې دَ رڼا یا هوا دَ پاره شوے سورے-

تابژن:(تاب-ژن)اسم صفت- مذکر- تود- توژن- تېژن- ګرم- تاوژن-

تابع:(تا-بع)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ابل- مطیع- فرمانبردار- ماتحت- نوکر- (م- عربي)-

تابعدار:(تا-بع-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- منونکے- فرمانبردار- مطیع- (غلط العام)- جمع تابعداران- (ش- اردو، هندي)-

تابعداري:(تا-بع-دا-ري)اسم- مؤنث- (۱)فرمانبرداري- حکم مننه- اطاعت- (۲)وفاداري-

تابع ګلوي:(تا-بع-ګل-وي)اسم- تابعداري-

تابعي:(تا-ب-عي)اسم- مذکر- هغه مسلمان چې دَ رسول کریم صلی الله علیه و آله وسلم صحابي ې لیدلے وي او تر مرګه مسلمان پاتې شوے وي- جمع تابعین-

تابعیت:(تا-ب-عي-یت)اسم- تابعداري- فرمانبرداري- تابع والے- (م- عربي)-

تابلو:(تاب-لو)اسم- واحد- مذکر- (۱)انځوره- تصویر- عکس- (۲)نمائش- ښودنه- (۳)جدول- شکل- (افغانستان)- (م- انګریزي، فرانسیسي)-

تابناک:(تاب-ناک)اسم صفت- روښانه- رڼ- (م- فارسي)-

تابناکي:(تاب-نا-کي)اسم- دَ تابناک کېدو حالت- وګورئ تابناک- (م- فارسي)-

تابندګي:(تا-بن-ده-ګي)اسم- ځلېدنه- ځلېدنه- چڼ کېدنه- روښنائي- (م- فارسي)-

تابنده:(تا-بن-ده)اسم صفت- روښانه- ځلېدونکے- رڼ- ځلېدونکے- چڼ کېدونکے- (م- فارسي)-

تابوت:(تا-بوت)اسم- واحد- مذکر- دَ لرګي هغه صندوق چې مړي پکښې دَ دفن کولو دَ پاره ایښولے شي- (م- عربي)-

تابوت ګر:(تا-بوت-ګر)اسم صفت- تابوت جوړونکے- جمع تابوت ګران- (عربي، فارسي مرکب)-

تابه:(تا-به)اسم- واحد- مؤنث- تبې- تبڼه- تبخې- توبے- جمع تابې-

تابهٔ:(تا-بهٔ)فعل- لهٔ تبل- څخه ماضي مطلق- وګورئ تبل-

تابیا:(تا-بیا)اسم- مؤنث- (۱)تابیه- انتظام- بندوبست- بندوبس- (۲)تیاري- ځان جوړونه- (م- عربي تبعیه)-

تابین:(تا-بین)اسم- مذکر- مرئے- ابل- (م- عربي)-

تابین:(تا-بین)اسم- (۱)قام- قبیله- خېل- (۲)ترتیب- بندوبست- ناز و نخره-

تابیه:(تا-بیه)اسم- وګورئ تابیا-

تاپ:(تاپ)اسم- مذکر- (۱)تاؤ- تپ- تاب- ګرمي- (۲)تبه-

تاپ:(تاپ)اسم صوت- مذکر- (۱)درب- ترپ- دَ ړولکي اواز- (۲)دَ پښو اواز- (م- هندي)-

تاپخ:(تا-پخ)اسم صوت- تا تا کونه- وګورئ تا- (دَ ماشوم لهجه)-

تاپره:(تاپ-ره)اسم- واحد- مؤنث- تپیے- دَ کرکټ دَ لوبې تپیے- بلا- جمع تاپرې-

تاپوړه:(تا-پو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- څوبارے- دَ جامو وینځلو لرګے- تپیے- جمع تاپوړې-

تاپېره:(تا-پې-ره)اسم- واحد- مؤنث- څپېره- چپراخه- چاپېره- جمع تاپېرې-

تاپې:(تا-پې)اسم- واحد جمع- مؤنث- څپیاکه- پهٔ دېوال تپلے شوے غشوے-

تاپے:(تا-پے)اسم- (۱)تپېدنه- (۲- صفت فاعل)- تپېدونکے- جمع تاپې- مؤنث تاپې-

تاپے:(تا-پے)اسم- واحد- مذکر- وچ زردالو- زچه خرماني- مندته- تانپے-

تات:(تات)اسم صفت- مذکر- ترټرے- تورتورے- هغه څوک چې ژبه ې نښلي-

تات:(تات)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټاټ- (افغانستان)-

تاتار:(تا-تار)اسم- واحد- مذکر- شمشوبے- شین شوے- دَ وېلنې او پودینې پهٔ رنګ یو بوټے- (افغانستان)-

تاترین:(تا-ته-رین)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېره ژوره کنده- پېره ښکته- (۲)تحت الثری- (۳)دوزخ-

تاتمل:(تات-مل)اسم- (۱)تلوسه- زیاته مینه- شوق- لېوالتیا- (۲)چرت- تصور- خیال- (۳)ارزو- (افغانستان)-

تاتمول:(تات-مول)اسم- وګورئ تاتمل-

تاتنګ:(تا-تنګ)اسم- واحد- مذکر- دَ زین تانګ- جمع تاتنګونه-

تاتوک:(تا-توک)اسم- واحد- مذکر- سوغات- تحفه- توښه- تارتوک-

ترديف:(تر-ديف)اسم- واحد- مذكر- (۱)رديفونه- پهٔ رديف كښې راوړنه- پېيل- روښونه- اوډنه- لغات د الف.ب... پهٔ ترتيب سره لېست كونه او برابرونه- (۲)مترادف الفاظ برابرونه- (م- عربي)-

تړه:(تر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د كبل ښېلې- كبله- بروه- مرغه- يو قسم واښهٔ- ښېلې- (۲)زغل- منده- تړه- دؤ- تراټ- (۳)تكليف- ستونزه- ربړ- (۴)د باران نرى شيبه- نرے باران- جمع تړې- (افغانستان)-

تړه چركے:(تر-ړه-چر-كے)اسم صفت- چيت- منډرے- پيشتے- لوښتينګ- تيټكے- غنډكے-

تړى:(تر-ړي)اسم- جمع- مذكر- نرى وريخ- د هاړ پهٔ سخته ګرمى كښې نرى وريخ- (افغانستان)-

تړېدل:(تر-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)لوغړېدل- اوړېدل راوړېدل- (۲)كړېدل- پهٔ عذاب كېدل-

تړېدلے:(تر-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع تړېدلى- مؤنث تړېدلې- وګورئ تړېدل-

تړېدن:(تر-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تړېدل-

تړېدنګ:(تر-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تړېدل-

تړېدنه:(تر-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تړېدل-

تړېدونكے:(تر-ړې-دون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع تړېدونكى- مؤنث تړېدونكې- وګورئ تړېدل-

تړېدهٔ:(تر-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضى استمرارى د واحد غائب صيغه- وګورئ تړېدل-

تړى:(تر-ړي)اسم- واحد جمع- مؤنث- د تور رنګ يوه مرغۍ-

تړى:(تر-ړي)اسم- واحد- مؤنث- تورى- تورورى- سرنا- سرنا-

ترزنے:(تر-زهٔ-نے)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)ترنده- ترهېدلے- تېورند- ناروړدے ځاروے- (۲)نابلد انسان- (۳)وارخطا- بې ثباته- (۴)بې پروا- وبېزار- جمع ترزنى-

ترړمي:(ت-رړو-مي)اسم صفت- (۱)ترمرى- د نمانبام لړه چې لا تيارهٔ پوره نهٔ وى خوره شوې- (۲)هغه شپې چې سپوږمى پكښې نهٔ وى-

ترس:(ترس)اسم- واحد- مذكر- (۱)ويره- يېره- ډار- رحم- ترس- (۲)مهربانى- زړهٔ سوے- زړهٔ خوږے- خوا خوږى- (م- فارسى)-

ترس:(ته-رس)اسم- واحد- مذكر- ترس- (عاميانه)-

ترسا:(تر-سا)اسم- (۱)مسيحى- عيسائى- نصرانى- (۲)اتش پرست- (م- فارسى)-

ترسان:(تر-سان)اسم- وېرېدونكے- وېره كونكے- (م- فارسى)-

ترساول:(تر-سا-ول)مصدر- ويرول- ډارول-

ترساون:(تر-سا-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترساول-

ترساونكے:(تر-سا-ون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع ترساونكى- مؤنث ترساونكې- وګورئ ترساول-

ترساونه:(تر-سا-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترساول-

تر سرول:(تر-س-ر-ول)مصدر- (۱)سر ته رسول- پوره كول- (۲)پهٔ خان باندې لګول- (۳)پهٔ صحيح طريقه خرڅ كول- (افغانستان)-

تر سره:(تر-سه-ره)متعلق فعل- (۱)تر اخيره- اجرا- پوره- تر پايه- انجام- (۲)تر سره پورې- تر سره كېدنه-

ترسكن:(ترس-كن)اسم صفت- واحد- مذكر- ترسنه- سركېر- ګړينګ- كوږ-

ترسكن:(ترس-كن)اسم صفت- تروسكون- ترش- مزه ناک- خوندناک- ترسكون-

ترسكنول:(ترس-ک-نه-ول)مصدر متعدى- ترسكونول- مزه ناک كول- خوندناک كول- تروسكنول-

ترسكنونكے:(ترس-ک-نه-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع ترسكنونكى- مؤنث ترسكنونكې- وګورئ ترسكنول-

ترسكنونه:(ترس-ک-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترسكنول-

ترسكون:(ترس-كون)اسم صفت- وګورئ ترسكن-

ترسكونول:(ترس-كو-ن-ول)مصدر متعدى- وګورئ ترسكنول-

ترسكونونكے:(ترس-كو-ن-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع ترسكونونكى- مؤنث ترسكونونكې- وګورئ ترسكنونكے-

ترسكونونه:(ترس-كو-ن-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترسكنونه-

ترسكونېدل:(ترس-كو-نې-دل)مصدر لازم- خوندور كېدل- مزه ناک كېدل- د يو څيز خوند زياتېدل-

ترسكونېدن:(ترس-كو-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترسكونېدل-

ترسكونېدنه:(ترس-كو-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترسكونېدل-

ترسكونېدونكے:(ترس-كو-نې-دون-كے)اسم فاعل- وګورئ ترسكونېدل-

ترسكونېدهٔ:(ترس-كو-نې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضى استمرارى د واحد غائب صيغه- وګورئ ترسكونېدل-

ترسناک:(ترس-ناک)اسم صفت- رحم كونكے-

ترسنده:(تر-سن-ده)اسم صفت- ويرېدونكے- ترس كونكے- زړهٔ سونكے-

ترسول:(تر-س-ول)مصدر متعدى- (۱)وېرول- ډارول- يېرول- ډورول- (۲)پسخول- (۳)تپول- توسول- (افغانستان)-

ترسون:(تر-س-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترسول-

ترسونكے:(تر-س-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع ترسونكى- مؤنث ترسونكې- وګورئ ترسول-

ترسونه:(تر-س-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترسول-

ترسى:(تر-سي)اسم صفت- واحد- مذكر- ترسناک- ترس كونكے-

ترسېدل:(تر-سې-دل)مصدر لازم- (۱)ډارېدل- ويرېدل- يېرېدل- (۲)تپېدل- توسېدل- څهٔ څيز ته زړهٔ كېدل- (۳)رحمېدل- زړهٔ سول- رحم راتلل-

ترسېدن:(تر-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترسېدل-

ترسېدنه:(تر-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترسېدل-

ترسېدونکے:(تر-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترسېدونکي- مؤنث ترسېدونکې- وګورئ ترسېدل-

ترسېدهٔ:(تر-سې-دهٔ)حاصل مصدر از د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- . وګورئ ترسېدل-

ترسيل:(تر-سيل)اسم- لېږنه- (م- عربي)-

ترسيم:(تر-سيم)اسم- (۱)ېيزائن کونه- نقش کونه- رسم کونه- (۲)رسمونه- نښه ايښونه- (م- عربي)-

ترسيمول:(تر-سي-مه-ول)مصدر متعدي- (۱)ېيزائن جوړول- په يو څيز باندې کرښه يا خط ايستل- (۲)رسم ايستل- رواج جوړول- نقش کول- (۳)نقشه ايستل- (۴)نښه يا نښان ايښودل-

ترسيمونه:(تر-سي-مه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترسيمول-

ترش:(ترش)اسم صفت- (۱)ترېو- تروش- ټاک- ټوک- (۲)بوټ- بروس- (م- فارسي)-

ترشخ:(ت-رش-شخ)اسم- واحد- (۱)پوند- لږ باران- نرئ شبنه- خرعه- (۲)زيم- (۲)ښخا- ښخوبے- ښخېدنه- (م- عربي)-

ترش رو:(ترش-رو)صفت- ترېو مخے- غصه ناک- (م- فارسي)-

ترش روني:(ترش-رو-ني)اسم- واحد- مؤنث- د ترش رو کېدو حالت-

ترشي:(تر-شي)اسم- (۱)د ترش کېدو حالت- (۲)اچار- ترازهٔ څيزونه- سرکه- (۲)ترېو والے-

ترشې:(تر-شې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)ترازې- (۲)وچه غوښه-

ترښ:(ترښ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ترش- تروش- (۲)ترېو شان- ترېوکے- (۲)ترسکون-

ترښخ:(تر-ښخ)اسم- واحد- مؤنث- تښخ- د ترکاڼانو يو اوزار چې لرګے پرې توږلے از ماتولے شي- جمع ترښخې-

ترښخي:(تر-ښهٔ-خي)اسم- واحد جمع- مؤنث- هغه ګلکاري چې په لښتونو از کړېوان کولے شي-

ترښکه:(ترښ-که)اسم- واحد- مؤنث- نرئ لار- د پيادو لار- جمع ترښکې-

ترصد:(ته-رص-صد)اسم- څارنه- ليدنه- کتنه- څار- څاؤ- انتظار- څهٔ څيز ته کتنه از د نظر لاندې لرنه-

ترصدګاه:(ته-رص-صد-ګاه)اسم- (۱)د څارنې، ليدنې او پلټنې ځاې- (۲)رصدخانه- رصدګاه-

ترصيع:(تر-صيع)اسم- د نظم يا نثر کلمات په وزن او قافيه مرتب کونه- مرصع کونه- (م- عربي)-

ترغا:(تر-غا)اسم- ترغه- تالان- لوټ- چور- چپاول-

ترغاړوت:(تر-غا-ړ-وت)ماضي مطلق- وګورئ ترغاړوتل-

ترغاړوتل:(تر-غا-ړ-و-تل)مصدر- غاړوتل- غاړه ورکول- غاړه غټې کېدل- روغ جوړ کول-

ترغاړوتنه:(تر-غا-ړ-و-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترغاړوتل-

ترغاړوتونکے:(تر-غا-ړ-و-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترغاړوتونکي- مؤنث ترغاړوتونکې- وګورئ ترغاړوتل-

ترغاړه:(تر-غا-ړه)اسم صفت- (۱)ذمه- اناړې- په غاړه- هغه کار چې چا ته سپارلے شوے وي- (۲)غاړه په غاړه- غاړه په غاړه کېدهٔ-

ترغاړه وتهٔ:(تر-غا-ړ-و-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ترغاړوتل-

ترغاړے:(تر-غا-ړے)اسم صفت- تورغاړے- توره غاړه لرونکے- عام طور سره د مرز، ګړ يا چېلۍ سره راځي- جمع ترغاړي-

ترغاګ:(تر-غاګ)اسم- (۱)تلغاګ- سخته سيلۍ او باران- خول- (۲)شاړه زمکه- مېره- (۲)تالنده او بربښنا- (افغانستان)-

ترغچي:(تر-غهٔ-چي)اسم- واحد- مؤنث- د جينکو يو قسم لوبه-

ترغلونے:(تر-غلو-نے)اسم- واحد- مذکر- د تي درد- هغه بيماري چې د څاروو يا زناناؤ په تيو کښې پېدا کيږي-

ترغوړے:(تر-غوه-ړے)اسم- واحد- مذکر- تور غوږونه لرونکے يو صحرائي پيش- پيشو پړانګ- جمع ترغوړي-

ترغوړے:(تر-غوه-ړے)اسم صفت- (۱)تور غوړے- هغه پسه چې غوږونه ئې تور وي- (۲- صفت)خبره نهٔ منونکے بنيادم- جمع ترغوړي-

ترغونې:(ت-ره-غو-نې)اسم- واحد- مؤنث- د نماښام خړه- ترمړے- ترړمې- په کوم ځاې کښې چې لړه شان تيارهٔ خوره شي- د نماښام لړه-

ترغونے:(تر-غو-نے)اسم- واحد- مذکر- لرغونے- نرغونے- پخوانے- زوړ- قديمي- تاريخي- (افغانستان)-

ترغه:(تر-غه)اسم صفت- (۱)کډوډ- (۲)تالا- لوټ- نښتلے-

ترغهٔ:(تر-غهٔ)تابع مهمل- د "تالا" تابع مهمل-

ترغي ترغي:(تر-غي-تر-غي)اسم صفت- تالا ترغه- کډوډ- لت په لت- لت پت- نښتلے- شينده وينده- سره پاشلے- تس نس- تار په تار-

ترغيب:(تر-غيب)اسم- واحد- مذکر- (۱)رغبت ورکونه- (۲)المسونه- پارونه- مينونه- جمع ترغيبونه-

ترغيع:(تر-غيع)اسم- پرزموشن- لوړونه- زچتونه- پورته کېدنه- (افغانستان)- (م- عربي)-

ترق:(ترق)اسم صوت- ټق چودنه- پرق چودنه- په منځ چودنه- دوه ړوله کېدنه-

ترقول ۱:(تره-ق-ول)مصدر متعدي- شلول- جدا کول- ټق چودل- پرق چودل- په منځ چودل- دوه ړوله کېدل-

ترقول ۲:(تره-ق-ول)مصدر متعدي- زميرول- په عذابول-

ترقون:(تره-ق-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترقول ۱-

ترقون:(تره-ق-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترقول ۲-

ترقونکے:(تره-ق-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترقونکي- مؤنث ترقونکې- وګورئ ترقول ۱-

ترقونکے:(تره-ق-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترقونکي- مؤنث

ترقونکې- وګورئ ترقول ۲-

ترقونه:(تره-ق-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترقول ۱-

ترقونه:(تره-ق-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترقول ۲-

ترقی:(ت-ر-قی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وده- لوئېدنه- ختنه- رفعت- (۲)پرمختګ- وړاندې تګ- پراختیا- لوړوالے- انکشاف- لوړې درجې ته رسېدنه- جمع ترقی- (افغانستان)- (م- عربی)-

ترقی پسند:(ت-ر-قی-پ-سند)اسم- اسم صفت- (۱)ترقی خوښونکے- (۲)په معاشره کښې اصلاح خوښونکے-

ترقی پسندی:(ت-ر-قي-پ-سن-دی)اسم- مؤنث- د ترقی پسند عقیده- په معاشره کښې د اصلاح اصولو حمایت-

ترقي یافته:(ت-ر-قي-یاف-ته)اسم- مترقي- په وړاندې تللے-

ترقېدل ۱:(تره-قې-دل)مصدر لازم- شلېدل- جدا کېدل- دوه ټوله کېدل-

ترقېدل ۲:(تره-قې-دل)مصدر لازم- زمیرېدل- په عذابېدل-

ترقېدلے:(تره-قې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترقېدلي- مؤنث ترقېدلې- وګورئ ترقېدل ۱-

ترقېدلے:(تره-قې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترقېدلي- مؤنث ترقېدلې- وګورئ ترقېدل ۲-

ترقېدن:(تره-قې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترقېدل ۱-

ترقېدن:(تره-قې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترقېدل ۲-

ترقېدنه:(تره-قې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترقېدل ۱-

ترقېدنه:(تره-قې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترقېدل ۲-

ترقېدونکے:(تره-قې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترقېدونکي- مؤنث ترقېدونکې- وګورئ ترقېدل ۱-

ترقېدونکے:(تره-قې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترقېدونکي- مؤنث ترقېدونکې- وګورئ ترقېدل ۲-

ترقېدهٔ:(تره-قې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ترقېدل ۱-

ترقېدهٔ:(تره-قې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ترقېدل ۲-

ترک:(ترک)اسم- واحد- مذکر- د مرغیو د نیولو یو قسم پړکه یا لومه-

ترک:(ترک)اسم- (۱)ترق- تړق- برق- چاود- درز- (۲)تړک- د چاودلو اواز- (۳)دبوتي تېغ یا تېغے راوتنه- (۴)د نینو کولو اواز- (۵)د شړۍ، کمبلې په پلونو (غاړو) نقش کونه- (افغانستان)-

ترک:(ترک)اسم- پرېښودنه- قضا کونه- ترک کونه- (م- عربی)-

ترک:(ترک)اسم- واحد- مؤنث- ستره تله- د تول هغه ستره تله چې دکانداران پکښې کڼ شمېر څیزونه په یو وخت تللے شي- جمع ترکونه- (م- هندی)-

ترک:(ترک)اسم صفت- (۱)ښکلے- محبوب- ګران- اشنا- (۲)عسکر- سپائی- (افغانستان)-

ترکا:(ت-ر-کا)اسم صوت- (۱)تړکا- ترقا- د چاودلو پرله پسې اواز- (۲)د نینو کولو اواز- (۳)تړکو- ټکا- ټکو- د اس د پښو اواز-

ترکاری:(تر-کا-ری)اسم- واحد- مؤنث- سبزی- تلکاری-

ترکاڼ:(تر-کاڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښ- د لرګی کار کونکے- اُستکار- دروزګر- ترکڼ- (۲)د یوې مرغۍ نوم- ترکاڼک- ټکټکے- ټکټکاڼے- ترکاڼے-

ترکاڼک:(تر-کا-ڼک)اسم- واحد- مذکر- ترکاڼ- ټکټکے- ټکټکاڼے- ترکاڼے- د یوې مرغۍ نوم چې په مښوکه لرګی ټکوی-

ترکاڼی:(تر-کا-ڼی)اسم- د ترکاڼ کسب- د ترکاڼ پېشه-

ترکاڼے:(تر-کا-ڼے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ترکاڼک-

ترکړ:(تر-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)شوخ- (۲)پساتی- فسادی- ورانکارے- چالاک- ضدی- اړی مار-

ترکړی:(ترک-ړی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترک-

ترکش:(تر-کش)اسم- واحد- مذکر- د غشیو ایښو شخول- ترکښ-

ترکش بندی:(تر-کش-بن-دی)اسم- فوځی خدمت- عسکریت- سپاهی توب- (افغانستان)-

ترکښ:(تر-کښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ترکش-

ترکله:(تر-ک-له)اسم- واحد- مؤنث- پترکله- پخوانے چربدار ټوپک- جمع ترکلې-

ترکڼ:(تر-کڼ)اسم- واحد- مذکر- ترکاڼ- ښ- ښ- (افغانستان)-

ترکڼکے:(تر-کڼ-کے)اسم- واحد- مذکر- د مچقنې هغه بچولے چې اواز ترې پېدا کیږی- تنه کرکے- (افغانستان)-

ترکوبره:(تر-کوب-ره)متعلق فعل صفت- (۱)تل- همېشه- (۲)زیات- کافی- ډېره زیاته اندازه- (افغانستان)-

ترکودے:(تر-کو-دے)اسم- شینکے- زرغنېدونکے- راشین کېدونکے او ټوکېدونکے-

ترکودے:(تره-کو-دے)اسم- چینی- تری- بوره- (افغانستان)-

ترکول ۱:(تر-ک-ول)مصدر متعدی- (۱)غوښې یا نورو خوړو ته د چا اشتها پارول- د چا خله اُبهٔ اُبهٔ کول- (۲)غوښه په غوړیو کښې وریتول یا سره کول- (۳)خوړول- (۴)شړقول- په لښتو باندې وهل- په چابک وهل-

ترکول ۲:(تر-ک-ول)مصدر متعدی- پرېښول- پرېښودل- لاس اخستل- (م- ترک- عربی)-

ترکول ۳:(ترهٔ-ک-ول)مصدر متعدی- لږ شان زخمی کول-

ترکولے:(تر-ک-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترکولی- مؤنث ترکولې- وګورئ ترکول ۱-

ترکولے:(ترهٔ-ک-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترکولی- مؤنث ترکولې- وګورئ ترکول ۲-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ړو-بې-دهٔ)

ترکون:(تر-کَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۱-

ترکون:(تر-کَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۲-

ترکون:(تره-کَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۳-

ترکونکے:(تر-کَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکونکی- مؤنث ترکونکې- وګورئ ترکول ۱-

ترکونکے:(تر-کَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکونکی- مؤنث ترکونکې- وګورئ ترکول ۲-

ترکونکے:(تره-کَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکونکی- مؤنث ترکونکې- وګورئ ترکول ۳-

ترکونګ:(تر-کَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۱-

ترکونګ:(تر-کَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۲-

ترکونګ:(تره-کَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۳-

ترکونه:(تر-کَ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۱-

ترکونه:(تر-کَ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۲-

ترکونه:(تره-کَ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترکول ۳-

ترکونے:(تر-کو-نے)اسم- واحد- مذکر- د غنمو د فصل یوه بیماری- غوړکے- تورکے- مریضی نبات- (افغانستان)-

ترکه:(تر-که)اسم- واحد- مؤنث- نانځکه- لښکه- ناوکی- نینځکه- کوړې- لوخکه- لانخکه- جمع ترکې-

ترکه:(تر-که)اسم- واحد- مؤنث- د ونې نازکه څانګه یا تنکی لښته- لونه- جمع ترکې-

ترکه:(تر-که)اسم- واحد- مؤنث- د میراثی مال وېش- په میراثی مال کښې د هر یو برخه لرونکی برخه معلومونه- ماترک- متروکات-

ترکهار:(تره-که-هار)اسم صوت- د اس یا د نورو څاروو د پښو اواز- ټپهار- د لښتې یا د چابک د شړق اواز- ترکهارے-

ترکهارے:(تره-که-ها-رے)اسم صوت- وګورئ ترکهار-

ترکیب:(تر-کیب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ساخت- جوړونه- (۲)طریقه- (۳)چل- فرېب- جمع ترکیبونه-

ترکیب بند:(تر-کیب-بند)اسم- د شاعرئ په اصطلاح کښې ہر بندونه لرونکے هغه نظم چې د بندونو تر مېنځه یو داسې "مطلع" لری چې نورو بندونو سره ئې قافیه لرل ضروری نه وی-

ترکیبی:(تر-کی-بی)اسم صفت- د ترکیب سره متعلق-

ترکېدل ۱:(تر-کې-دل)مصدر لازم- تېپېدل- (۱)توسېدل- سوسېدل- د خوراک څیز ته زړه کېدل- اشتها پیدا کېدل- (۲)خوږېدل- کوږېدل-

ترکېدل ۲:(تر-کې-دل)مصدر لازم- (۱)شړقېدل- ترقېدل- په چابک یا لښته وهلے کېدل- (۲)زرغنېدل- راټوکېدل-

ترکېدلے:(تر-کې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترکېدلی- مؤنث ترکېدلې- وګورئ ترکېدل ۱-

ترکېدلے:(تر-کې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترکېدلی- مؤنث ترکېدلې- وګورئ ترکېدل ۲-

ترکېدن:(تر-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترکېدل ۱-

ترکېدن:(تر-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترکېدل ۲-

ترکېدنګ:(تر-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ترکېدل ۱-

ترکېدنګ:(تر-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ترکېدل ۲-

ترکېدنه:(تر-کې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترکېدل ۱-

ترکېدنه:(تر-کې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترکېدل ۲-

ترکېدونکے:(تر-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکېدونکی- مؤنث ترکېدونکې- وګورئ ترکېدل ۱-

ترکېدونکے:(تر-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکېدونکی- مؤنث ترکېدونکې- وګورئ ترکېدل ۲-

ترکېده:(تر-کې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ترکېدل ۱-

ترکېده:(تر-کې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ترکېدل ۲-

ترکی:(تر-کی)اسم- (۱)سیاتاق- تورې دانې چې غنمو سره ګډې وی- (۲)یو قسم شینکے چې دانې ئې خوړلے شی-

ترکی:(تر-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د ترکی نسل یو قسم ګډه-

ترکے:(تره-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)خراب او تراوه خواړه- هغه خوراک چې خوند ئې اړولے وی- (۲)تورانکے- تورمرغے- (افغانستان)-

ترکے:(تر-کے)اسم- واحد- مذکر- توتکرے- توتکرکے- سایره- ابابیل-

ترګ:(ترګ)اسم- واحد- مذکر- موتے- د څناورو یو مرض چې مثانه یا پوکنې ئې خرابه شی-

ترګ:(ترګ)اسم- واحد- مذکر- هغه پړے چې د څاروی په پوزه کښې اچولے کیږی او د ښکرونو سره تړلے شی- جمع ترګونه- (افغانستان)-

ترګ:(ترګ)اسم- واحد- مذکر- زنار- هغه تار چې هندوان ئې په ترغړ په غاړه کښې اچوی- جمع ترګونه-

ترلپ:(تر-لپ)اسم- تاخت- منډه- تړره- دړره- تراپ-

ترلغونے:(تر-له-غو-نے)اسم- د بزو یا نورو څاروو یو قسم بیماری چې د خلې نه ئې لاړې بهیږی-

ترلکه:(تر-ل-که)اسم- واحد- مؤنث- شپېلی- جمع ترلکې-

ترله:(تر-له)اسم- واحد- مؤنث- د تره لور-

ترله:(تر-له)متعلق فعل- یو د بل سره- یو د بله- یو له بله سره- یو د بل نه-

ترله انا:(تر-له-اَ-نا)اسم- واحد- مؤنث- قره نیا- د نیا مور-

ترله وتل:(تر-له-وَ-تل)مصدر- (۱)خفه کېدل- غصه کېدل- په قهر کېدل- پرسېدل- (۲)په مېلمه زیات تاوان کول- تاوان کول- (۳)پرغزېدل-

سرګردانه کېدل- اوتربدل- ګنګس کېدل-

ترله وتلے:(تر-له-وَ-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترله وتلي- مؤنث ترله وتلې- وګورئ ترله وتل-

ترله وتن:(تر-له-وَ-تن)حاصل مصدر- وګورئ ترله وتل-

ترله وتنه:(تر-له-وَ-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترله وتل-

ترم:(ترم)اسم صفت- ترم- معمولي ګرم-

ترم:(ترم)اسم- واحد- مذکر- برغو- بګل- ښکر- تروم- تورم- ترنګ- بيګل-

ترم:(تَ-رم)اسم- واحد- مذکر- ناخصي اس- سانډ- هغه اس چې د اسپو تېرولو د پاره ساتلے شوے وي-

ترماميټر:(تر-ما-مي-ټر)اسم- واحد- مذکر- دَ درجه حرارت د معلومولو يوه آله- (م- انګريزي)-

ترماني:(تر-ما-ني)اسم- موشکک- هغه انار يا انګور چې پهٔ اخر وخت کښې پخيږي- (۲)منګنے- هغه فصل چې پهٔ مني کښې کرلے شي يا پخيږي- (افغانستان)-

ترمباز:(ترم-باز)اسم- واحد- مذکر- چرمباز- دَ غوبل هغه غوئے چې پهٔ قطار کښې دَ ټولو نه دننه تړلے وي- دَ ناوې غوئے- دَ نوي غوئے-

ترم ترم:(ترم-ترم)اسم صفت- ترمې ترمې- ذرې ذرې-

ترمتي:(تَ-رم-تي)اسم- واحد- مؤنث- ترمتاني- يوه ښکاري مرغۍ-

ترمچي:(ترم-چي)اسم- واحد- مذکر- ترم وهونکے- تروم غږونکے-

ترمکا:(ترم-کا)اسم- واحد- مؤنث- ترمکيا- پڼه- پونه کېدنه- پوړنه- چڼکاؤ- چړکاوے- ترمکاؤ- ترمکه-

ترمکاؤ:(ترم-کاؤ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترمکا-

ترمکه:(ترم-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترمکا-

ترمکه:(تر-م-که)اسم- واحد- مؤنث- شپېلۍ- جمع ترمکې-

ترمکه:(تر-م-که)اسم- واحد- مؤنث- کونه زيږېدنه- رنګ اوړېدنه-

ترمکيا:(ترم-کيا)اسم- واحد- مؤنث- پوړنه- پونه کونه- ټرمکيا-

ترمله:(ترم-له)اسم- واحد- مؤنث- سرسر- سرسرے- دَ وريږو هغه اُبهٔ چې وريږې پکښې يشولے شوې وي-

ترمنه:(تر-مهٔ-نه/ترم-نه)اسم- واحد- مؤنث- نوږنه زمکه- زېمناکه زمکه- هغه زمکه چې زيم لري- جبه- بوخته- يله- جمع ترمنې-

ترمنه:(تر-مهٔ-نه/ترم-نه)اسم- واحد- مؤنث- وتره- روته- کروندې ته تياره زمکه- وَتر-

ترموره:(تر-مو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترميره-

ترمول:(تر-م-ول)مصدر متعدي- پاڼې پاڼې کول- ترمې ترمې کول-

ترمون:(تر-م-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترمول-

ترمونکے:(تر-م-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترمونکي- مؤنث ترمونکې- وګورئ ترمول-

ترمونه:(تر-م-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترمول-

ترمه:(تر-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پسته خاوره- بوړه خاوره- پړندې خاوره- (۲)نوږنه زمکه- وتره زمکه- (۳)چودلې زمکه- چاود- چاوده-

ترمه:(ت-ر-مه)اسم- واحد- مؤنث- حاشيه- کرښې- جمع ترمې-

ترمي:(تر-مي)اسم- دَ شپون د رمې شړلو اواز- (افغانستان)-

ترمي ترمي:(تر-مي-تر-مي)اسم صفت- ترم ترم- ترمې ترمې- ټوټې ټوټې- ذرې ذرې- ريز مريز- خوروور-

ترميته:(تر-مي-ته)اسم- واحد- مذکر- دَ لګر او بيره پهٔ څېر يو ښکاري مارغهٔ- (افغانستان)-

ترميره:(تر-مي-ره)اسم- واحد- مؤنث- ترموره- بلاغتې- غنډې غنډې پاڼې لرونکے يو قسم ساګ چې پاڼې ئې پهٔ زخم د تړلو د پاره هم پکارولے شي-

ترميم:(تر-ميم)اسم- واحد- مذکر- اصلاح کونه- بيا سمونه- بيا جوړونه- بيا تيارونه- دَ کار د پاره بيا اماده کونه- (م- عربي)-

ترميمېدل:(تر-مي-مې-دل)مصدر لازم- اصلاح کېدل- بيا سمېدل- بيا جوړېدل- بيا روغېدل- بيا تيارېدل- (افغانستان)-

ترمې ترمې:(تر-مې-تر-مې)اسم صفت- وګورئ ترمي ترمي-

ترمېدل:(تر-مې-دل)مصدر لازم- پاڼې پاڼې کېدل- ترمې ترمې کېدل-

ترمېدلے:(تر-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترمېدلي- مؤنث ترمېدلې- وګورئ ترمېدل-

ترمېدن:(تر-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترمېدل-

ترمېدنګ:(تر-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ترمېدل-

ترمېدنه:(تر-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترمېدل-

ترمېدونکے:(تر-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترمېدونکي- مؤنث ترمېدونکې- وګورئ ترمېدل-

ترمېدهٔ:(تر-مې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ترمېدل-

ترمي:(تر-مي)اسم- واحد جمع- مؤنث- يوه ښکاري مرغۍ-

ترنا:(تر-نا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترناؤ-

ترناؤ:(تر-ناؤ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترنا- ترې- ناوه- هغه لويه ناوه چې د لښتي يا ولې نه پرې بلې غاړې ته اُبهٔ اړولے شي- (۲)وَله- ويالهٔ- بيالهٔ- ببله- دَ ابو لښتے-

ترنج:(ترنج)اسم- خوز- يو ازغن بوټے چې تُرنجبين ترې حاصليږي- اوښان ئې پهٔ مينه خوري- نباتاتي نوم هېري سارم الهاکي-

ترنج:(تَ-رنج)اسم- واحد- مذکر- يوه ونه او د هغې مېوه چې بوټے ئې لهٔ نارنجه وړوکے او مېوه ئې لهٔ نارنجه غټه او خوږه وي- چکوتره- جمع ترنجان- (م- فارسي)-

ترنج:(تر-نج)اسم صفت- کونجه- ګونځه- وَچ- ناهموار-

ترنجبين:(تُ-رن-ج-بين)اسم- ترنګبين- د خاص قسمه ازغو يوه خوږه شيره- پهٔ طب کښې دَ ټخې او د سينې د درد د پاره استعمالولے شي-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زبر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(پو-هې-دهٔ)

ترنجکه:(ترن-ج-که)اسم- واحد- مؤنث- ترانجه- درپکه- درینجکه- درنجکه- جمع ترنجکې-

ترنجوکی:(ترن-جو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړه کلاوه- اټه- وړه ترنجه- ترنجی- د وربښمو یا سپنسو اټه-

ترنجه:(ترن-جه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترنجوکي-

ترنجه:(ترن-جه)اسم- واحد- مؤنث- ترنجی- د کاڼي وړه تېره تخته چې شپانهٔ پرې د ضرورت په وخت ګډې بزې وغېره حلالوی- جمع ترنجې-

ترنجی:(ترن-جی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ترنجوکی-

ترنجی:(ترن-جی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ترنجه- د کاڼي مغه تېره تخته چې شپانهٔ ې د حلالې د پاره استعمالوی-

ترنخ:(ترنخ)اسم صفت- نرے- خوار- ټپ- ړنګر- مانده- د چاق ضد-

ترنختوب:(ترنخ-توب)اسم- نرے توب- ړنګرتوب- کمزورتیا- ترنختیا- ترنخوالے- کمزوری- ړنګروالے- مانده توب-

ترنختیا:(ترنخ-تیا)اسم- وګورئ ترنختوب-

ترنخکے:(ترن-خ-کے)اسم تصغیر- خوارکے- کمزورګوټے- د ترنخ اسم تصغیر- جمع ترنخکی-

ترنخلے:(ترن-خهٔ-لے)اسم صفت- (۱)بخیل- شوم- ترنګلے- ترینګلے- (۲)سخت- کلک-

ترنخوالے:(ترنخ-وا-لے)اسم- وګورئ ترنختوب-

ترنخوکي:(ترن-خو-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ترنجوکی-

ترنخول:(ترن-خ-ول)مصدر متعدی- خوارول- کمزورے کول- مانده کول- ضعیفول- ټپ ټیپ کول- ړنګرول-

ترنخون:(ترن-خ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترنخول-

ترنخونکے:(ترن-خ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترنخونکی- مؤنث ترنخونکې- وګورئ ترنخول-

ترنخونګ:(ترن-خ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ترنخول-

ترنخونه:(ترن-خ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترنخول-

ترنخه:(ترن-خه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د ترنخ مؤنث- وګورئ ترنخ-

ترنخېدل:(ترن-خې-دل)مصدر لازم- خوارېدل- مانده کېدل- کمزورے کېدل- ړنګرېدل-

ترنخېدن:(ترن-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترنخېدل-

ترنخېدنګ:(ترن-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ترنخېدل-

ترنخېدنه:(ترن-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترنخېدل-

ترنخېدونکے:(ترن-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترنخېدونکی- مؤنث ترنخېدونکې- وګورئ ترنخېدل-

ترنخېدهٔ:(ترن-خې-دهٔ)حاصل مصدر از د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ترنخېدل-

ترنخی:(ترن-خی)اسم- د اُبو داره- د اُبو پشکه- شتې- (افغانستان)-

ترنخے:(ترن-خے)اسم صفت- زېچ کلک- نرے- کمزور-

ترنغ:(ترنغ)اسم صفت- ټوغ- کړوپ-

ترند:(ت-رند)اسم صفت- ترمند- ترمېدونکے- ترېدونکے-

ترندار:(ترن-دار)اسم- واحد- مؤنث- تندیاره- ترنداره- تنداره- ترینداره- د تره ښځه-

ترنداره:(ترن-دا-ره)اسم- واحد- مونث- وګورئ ترندار-

ترندتوب:(ترند-توب)اسم- ترندتیا- تورېدنه- تېورېدنه- ترمېدنه- ترېدنه- ترندوالے- بارېدنه- تور خوړنه- د ترمېدو عادت-

ترندتیا:(ت-رند-تیا)اسم- وګورئ ترندتوب-

ترندوالے:(ت-رند-وا-لے)اسم- وګورئ ترندتوب-

ترنده:(ت-رن-ده)اسم صفت- ترند- ترمند- ترمېدونکے-

ترنده:(ترن-ده)اسم- بړ- تندره- د سپوږمۍ تندر-

ترندې:(ترن-دې)اسم- جمع- مؤنث- ملې خلې- منډې ترنډې- جدوجهد- تګ و دو- منډې تړړې-

ترندے:(ت-رن-دے)اسم صفت- ترند- ترنده- ترمند- ترمېدونکے- ترېدونکے- جمع ترندی-

ترنړ:(ترنړ)اسم- ځرب اس- چاق اس- غټ پټ اس-

ترنړ:(ترنړ)اسم صفت- غټ-

ترنړه:(ت-رن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- ټولے- ګروه- غنډه- پله- ترنړی-

ترنړه:(ترن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- ټوپ- منډه-

ترنړی:(ترن-ړی)اسم- (۱)زیات خلق- (۲)د مېلمنو ګڼه ګوڼه- (۳)په زوره چغې، شور، زوږ، نارې سورې، غل غوبل- (۴)ترنړه- پله- ټولے-

ترنګ:(تر-نګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)قهر- غصه- تاؤ- خشکی- (۲)زیاته اشتها- زیاته تلوسه-

ترنکوځه:(ترنګ-کو-ځه)اسم- واحد- مؤنث- ترنکوځه- مچغنه- مچوغنه- مچلغزه- مچنغزه- بشنغزه- چنغزه- ببلچنه- جمع ترنکوځې-

ترنکی:(تر-نه-کی)اسم صفت- قهرژن- خشکی- غصه ناک- تاوی- تاؤژن-

ترنګ:(ترنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ساز اواز- د ساز غړونه- د ګړیال اواز- د رباب اواز- (۲)یو ګړی- یو ساعت- (۳)وخت- ساعت- (۴)د غنمو نه پلی بیلونه (۵)د لوبو د پاره هوار شوے مېدان- (۲)د چینی لوښی د ماتېدو اواز-

ترنګ:(ت-رنګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ترم-

ترنګا:(ترنګ-ګا)اسم صوت- ترنګار- د ساز اواز- شرنګا- شړنګا-

ترنګار:(ترنګ-ګار)اسم صوت- وګورئ ترنګا-

ترنګ ترونګ:(ترنګ-ترونګ)اسم صوت- ټنګ ټکور- ساز- د ساز د غږېدلو په وخت کښې د ساز اواز-

ترنګړ:(ترنګ-ګړ)اسم- واحد- مذکر- لوئ کورے- ګرلځه- ګرلاځهٔ- وړوکے کمبو- د مزریو نه جوړ شوے کمبو- ترنګړ- جمع ترنګړونه-

ترنکړے:(تَرَنګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترنګړ- (۲)کمربند- پټې-
ملابند- جمع ترنکړی-

ترنګل:(تَرَنګ-ګل)مصدر متعدی- تړل- باړول- پهٔ ترنګړ کښې اچول-

ترنګلتوب:(تَرَنګ-ګل-توب)اسم- بړوسوالے- کاړساوے- ګورملتوب- ترش
روئی- ترنګلتیا- ترنګلوالے- (افغانستان)-

ترنګلتیا:(تَرَنګ-ګل-تیا)اسم- وګورئ ترنګلتوب- (افغانستان)-

ترنګلوالے:(تَرَنګ-ګل-وا-لے)اسم- وګورئ ترنګلتوب- (افغانستان)-

ترنګله:(تَرن-ګهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم ونه چې لهٔ لښتو ئې ټوکرۍ
جوړولے شی- (افغانستان)-

ترنګلی:(ترنګ-ګه-لی/ترنګ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تنګڼې-
تینګړی- دَ لاسونو پهٔ دژو ګټو څوک وهنه- (۲)دَ لاسونو دَ دژو ګټو نه پهٔ
زوره اواز وکښنه-

ترنګلے:(تَرَنګ-ګهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترنګلی- مؤنث
ترنګلې- وګورئ ترنګل-

ترنګن:(تَرَنګ-ګن)حاصل مصدر- وګورئ ترنګل-

ترنګنه:(تَرَنګ-ګهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترنګل-

ترنګڼ:(تَرَنګ-ګڼ)اسم- واحد- مذکر- ترنګړ- ترنګڼې- جوزال- جوال-
وګورئ ترنګړ-

ترنګڼې:(ترنګ-ګ-ڼې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ترنګڼ- ترنګړ- جووال- لویه
بوجۍ چې ډېرې دانې پکښې ځائیږی-

ترنکو:(ترنګ-ګو)اسم- ځرنده- سارنګ- سرنده- غچکه- غړکه- سارنده- ساز-

ترنکوځه:(تَرن-کو-ځه)اسم- واحد- مؤنث- ماکو- سلائی ګکه- مارمچی- ټک
نهٔ زرکونکې ډنبره یا موچی- جمع ترنکوځې-

ترنکوځه:(تَرن-کو-ځه)اسم- واحد- مؤنث- مچڼنه- وګورئ ترنکوځه- جمع
ترنکوځې-

ترنګول:(تَرَنګ-ګه-ول)مصدر متعدی- (۱)هر تار لرونکې دَ موسیقی آله وهل،
غږول- ساز ټنګول- تار لرونکی ساز نه اواز ایستل- (۲)راکښل-

ترنګون:(تَرَنګ-ګه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترنګول-

ترنګونکے:(تَرَنګ-ګه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترنګونکی-
مؤنث ترنګونکې- وګورئ ترنګول-

ترنګونکے:(تَرَنګ-ګون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترنګونکی- مؤنث
ترنګونکې- وګورئ ترنګل-

ترنګونګ:(تَرَنګ-ګه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ترنګول-

ترنګونه:(تَرَنګ-ګه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترنګول-

ترنګه:(تَرَنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- هواره تخته- جمع ترنګې-

ترنګهار:(تَرَنګ-ګار)اسم صوت- دَ رباب ټنګونه- دَ ترنګ او ټنګ اواز-
ترنګے-

ترنګېدل:(تَرَنګ-ګې-دل)مصدر لازم- (۱)ټنګېدل- ترنګېدل- تار لرونکی ساز
نه اواز ایستل- (۲)دَ غنمو دَ ډنډری وچېدل او کړېدل چې دَ پخېدو نښه
ګڼلے شی-

ترنګېدن:(تَرَنګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ترنګېدل-

ترنګېدنګ:(تَرَنګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ترنګېدل-

ترنګېدنه:(تَرَنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترنګېدل-

ترنګېدونکے:(تَرَنګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع
ترنګېدونکی- مؤنث ترنګېدونکې- وګورئ ترنګېدل-

ترنګېدهٔ:(تَرَنګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب
صیغه- وګورئ ترنګېدل-

ترنګے:(تَرَنګ-ګے)اسم صوت- وګورئ ترنګهار-

ترنګے:(تَرَنګ-ګے)اسم- (۱)دَ غنمو دروزه- (۲)هغه ډنډر چې دَ غنمو دَ
پخېدو نه پس پرې دَ غنمو وږے راکوږ شی- (افغانستان)-

ترنم:(تَ-رن-نُم)اسم- (۱)پهٔ خوږ اواز وینه- (۲)ګنېدنه- پوزه کښې خبرې
کونه- (م- عربی)-

ترنوی:(تر-نه-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ترناؤ- محرابی ناله-

ترنه انا:(تر-نه-اَ-نا)اسم- واحد- مؤنث- قره نیا- دَ نیا مور- ترله أنا-

تر نیکهٔ:(تَر-نی-کهٔ)اسم- واحد- مذکر- قر نیکهٔ- ټر نیکهٔ- دَ غرنیکهٔ پلار- دَ
نیکهٔ نیکهٔ- ټر نیکهٔ-

ترنے:(تَر-نے)اسم- واحد- مذکر- محصول- ټېکس- ترڼے-

ترڼا:(تَر-ڼا)اسم- واحد- مؤنث- سُرنا- پوڼکې- سُرنے- جمع ترڼې-

ترڼے:(تر-ڼے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ترنے-

ترو:(ترو)حرف- نو- (متروک)-

ترو:(ترو)اسم صوت- دَ خر شړلو اواز-

تروالے:(تر-وا-لے)اسم- تریووالے- تُرشی- تُرشوالے-

تروان:(تَر-وان)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو قسم واښهٔ چې اوښان ئې خوری-

تروان:(تَر-وان)اسم- سورکے- دَ شلتالو پهٔ شان مېوه لرونکے یو بوټے-

تروبے:(ترو-بے)اسم- واحد- مذکر- تروې اُبهٔ- سرکه- لهٔ تروو انګورو څخه
زېستلې اُبهٔ-

تروبے:(تَ-رو-بے)اسم- واحد- مذکر- کراړه- قرت- کرت- بسکوړه-

تروپ:(تَروپ)اسم- (۱)مولی- تېرب- ترب- (۲)اکاڼ- دَ مولی بوزغلے-
نباتاتی نوم رے فانس سے ټی وس-

تروپر:(ترو-پر/تَرو-پر)اسم- واحد- مذکر- دَ ترور خوئ-

تروپره:(ترو-پهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ تروپر مؤنث- دَ ترور لور- جمع
تروپرې-

تروپے:(ترو-پے)اسم- واحد- مذکر- تریو خوند لرونکے یو قسم ساګ-
تریچے- جمع تروپی-

تروتازګی:(تَ-رو-تا-زه-ګی)اسم- (۱)تازه والے- شین والے- (۲)خوشالی-
خوشحالی-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېښ "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ٥"(ز-ړه)، ٶ"(پو-بې-دهٔ)

تروتازه:(تَ-رو-تا-زه)اسمِ صفت- (۱)ډېر تازه- ډېر شين- (۲)ډېر خوشحال- ډېر خوښ-

تروږ:(تَروږ)اسم- (۱)تاوان- نقصان- زيان- (۲)چټي- بې ځايه- عبث- (۳)ډار- وېره- څنګ-

تروړل:(تَرو-ړَل)مصدرِ متعدی- تاواني کول- نقصاني کول-

تروړلے:(تَرو-ړَه-لے)اسمِ مفعول-واحد- مذکر- جمع تروړلي- مؤنث تروړلې- وګورئ تروړل-

تروږمن:(تَروږ-مَن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- تاواني- نقصاني- زيانمن- (افغانستان)-

تروړن:(تَرو-ړَن)حاصلِ مصدر- وګورئ تروړل-

تروړنګ:(تَرو-ړَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ تروړل-

تروړنه:(تَرو-ړَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تروړل-

تروړونکے:(تَرو-ړُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تروړونکي- مؤنث تروړونکې- وګورئ تروړل-

تروړه:(تَرو-ږه)اسمِ صفت- (۱)چټي- تاوان شوے- (۲)ذليل- (کول- کېدل مصدرونه)-

تروخ تروخ:(تَروخ-تَروخ)متعلق فعل/صفت- (۱)بيل بيل- جُدا جُدا- خوارهٔ وارهٔ- پرېشانه- (۲)دَ زړو شلېدنه- تروخې تروخې-

تروخې تروخې:(تَرو-خې-تَرو-خې)متعلق فعل/صفت- وګورئ تروخ تروخ-

ترودی:(تَرو-دی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تروړی- ګيدړه- سپلم- لومبړه- سپرلمه- دَ سائنسي نوم دَ پاره وګورئ تروړی-

ترور:(تَرور)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پلار يا دَ مور خور- (۲)مشرې ښځې ته دَ احترام دَ پاره ونيلے کېدونکے تورے- جمع تروريانې-

ترور:(تَ-رور)اسم- واحد- مذکر- ډار- وېره- خوف- وحشت-

ترور:(تَ-رُور)اسمِ صفت- وارخطا- ويرېدلے-

ترورتوب:(تَ-رور-توب)اسم- تروروالے- وارخطائي- وارخطاتوب- ترورتيا- وېره اخستهٔ-

تروروزی:(تَرور-زی)اسم- واحد- مؤنث- دَ ترور لور-

تروروزے:(تَرور-زے)اسم- واحد- مذکر- دَ ترور ځوئ- جمع تروروزی- مؤنث تروروزې-

ترورکه:(تَرو-رَهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ ترور اسمِ تصغير- دَ ترور يا بلې مشرې ښځې دَ پاره دَ مينې تورے- جمع ترورکې-

ترورمېړے:(تَرور-مې-ړے)اسم- دَ ترور خاوند- دَ ماسي خاوند- دَ پوپو خاوند-

تروروِل:(تَ-رو-ره-وَل)مصدرِ متعدی- ترهول- وارخطا کول- وحشت اچول- ګډوډې راوستل- وېره اچول- (افغانستان)-

تروروِل:(تَرو-ره-وَل)مصدرِ متعدی- ترور کَيل- ترور شمېرل- (افغانستان)-

ترورولی:(تَرور-وَ-لی)اسم- دَ ترور کېدو حالت- ترور سره دَ زرارهٔ يا خورنی رشته-

تروروونکے:(تَ-رو-ره-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تروروونکي- مؤنث تروروونکې- وګورئ تروروِل ۱-

تروروونه:(تَ-رو-ر-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تروروِل-

تروربېدل:(تَ-رو-رې-دَل)مصدرِ لازم- وار خطا کېدل- ويرېدل- ډارېدل- ترهېدل- (افغانستان)-

تروربېدل:(تَرو-رې-دَل)مصدرِ لازم- تښتولے کېدل- وژلے کېدل- وېره اچول- (افغانستان)-

تروربېدنه:(تَ-رو-رې-دَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تروربېدل-

تروربېدونکے:(تَ-رو-رې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تروربېدونکي- مؤنث تروربېدونکې- وګورئ تروربېدل-

تروری:(تَرو-ری)اسم- واحد- مؤنث- ترور ته دَ مينې تورے-

تروړی:(تَرو-ړی)اسم-واحد/جمع- مؤنث- چوری- لومبړه- تروړی-

توړل:(تَرو-ړَل)مصدرِ متعدی- تښتول- تروښل- توړل- لاس تاوُل- شوکول-

تروړلے:(تَرو-ړَهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع تروړلي- مؤنث تروړلې- وګورئ تروړل-

تروړن:(تَرو-ړَن)حاصلِ مصدر- وګورئ تروړل-

تروړنه:(تَرو-ړَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تروړل-

تروړونکے:(تَرو-ړُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تروړونکي- مؤنث تروړونکې- وګورئ تروړل-

تروړه:(تَرو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- توړه- (۱)وړه بوجی- (۲)هغه بوری چې پوره ډکه نهٔ وی- جمع تروړې- (م- منډی)-

تروړه:(تَرو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- جم جکړ- جکړ- هغه تيارهٔ چې دَ سيلی او باران سره وی

تروړه:(تَرو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- تقريباً نيم ګز وُږدوالے لرونکے دَ تيلې يا زرو تار- (افغانستان)-

تروړی:(تَرو-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لومبړه- تروړی- ګيدړه- سائنسي نوم ولپس ولپس (VULPES-VULPES)-

تروړے:(تَرو-ړے)اسم- واحد- مذکر- چورندک- چتے- چترکے- چتکے- يوه ډېره وړه مرغۍ-

تروژل:(تَرو-ژَل)مصدرِ متعدی- تروښل- توړل- تروړل- تښتول-

تروژلے:(تَرو-ژَهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع تروژلي- مؤنث تروژلې- وګورئ تروژل-

تروژن:(تَرو-ژَن)حاصلِ مصدر- وګورئ تروژل-

تروژنګ:(تَرو-ژَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ تروژل-

تروژنه:(تَرو-ژَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تروژل-

تروژونکے:(تَرو-ژُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تروژونکي- مؤنث تروژونکې- وګورئ تروژل-

"ئ" (ځی-ـزل)، "ې" (هې-ره-وَل)، "ی" (پيا-لی)، "ے" (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱.

ترووږمی:(ت-روو-مي)اسم صفت- ترمړے- ترمړی- دُ نماښام تیارهٔ- هغه شپه چې سپوږمی پکښې نهٔ وی-

تروش:(تروش)اسم صفت- وګوری ترُش-

تروشی:(ترو-شي)اسم- (۱)تریووالے- (۲)اچار- سرکه-

تروشے:(ترو-شے)اسم- واحد- مذکر- انتروشے- اینګے- انتړوشے- پرنجے- .تروشی-

تروښل:(ترو-ښل)مصدر متعدی- تروژل- تښتول- تروړل-

تروښن:(ترو-ښن)حاصل مصدر- وګوری تروښل-

تروښنه:(ترو-ښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری تروښل-

تروښول:(ترو-ښ-ول)مصدر متعدی- (۱)پهٔ غلا باندې یو شے تښتول- (۲)ساتل-

تروښولے:(ترو-ښ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تروښلی- مؤنث تروښولې- وګوری تروښول-

تروښون:(ترو-ښ-ون)حاصل مصدر- وګوری تروښول-

تروښونکے:(ترو-ښ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تروښونکی- مؤنث تروښونکې- وګوری تروښول-

تروښونکے:(ترو-ښون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تروښونکی- مؤنث تروښونکې- وګوری تروښل-

تروښونګ:(ترو-ښ-ونګ)حاصل مصدر- وګوری تروښول-

تروښونه:(ترو-ښ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری تروښول-

تروښېدل:(ترو-ښې-دل)مصدر لازم- (۱)پهٔ غلا باندې یو شے تښتولے کېدل- (۲)ساتلے کېدل-

تروښېدن:(ترو-ښې-دن)حاصل مصدر- وګوری تروښېدل-

تروښېدنګ:(ترو-ښې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری تروښېدل-

تروښېدنه:(ترو-ښې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری تروښېدل-

تروښېدونکے:(ترو-ښې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تروښېدونکی- مؤنث تروښېدونکې- وګوری تروښېدل-

تروښېدهٔ:(ترو-ښې-دهٔ)حاصل مصدر او دُ ماضی استمراری دُ واحد غائب صیغه- وګوری تروښېدل-

تروکېدل:(ترو-کې-دل)مصدر لازم- راټوکېدل- شنهٔ کېدل- رازرغنېدل-

تروکېدن:(ترو-کې-دن)حاصل مصدر- وګوری تروکېدل-

تروکېدنګ:(ترو-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری تروکېدل-

تروکېدنه:(ترو-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری تروکېدل-

تروکېدونکے:(ترو-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تروکېدونکی- مؤنث تروکېدونکې- وګوری تروکېدل-

تروکېدهٔ:(ترو-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دُ ماضی استمراری دُ واحد غائب صیغه- وګوری تروکېدل-

تروکے:(ترو-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خېلی خېلی بوټے چې پهٔ زمکه خور وی-

تروکے:(تر-و-کے)اسم- واحد- مذکر- تریوکے- یو تریو خوند لرونکے ساګ چې اوم او پوخ خوړلے شی- جمع تروکی-

تروکے:(ترو-کے)اسم- واحد- مذکر- خلے- جمع تروکی-

تروکے:(ت-رو-کے)اسم- واحد- مذکر- ږم ږم- یو قسم کیا چې پهٔ ځارووو دستونه لګوی- نباتاتی نوم اپومیا ټرپی تهم-

ترول:(ت-ر-ول)مصدر متعدی- ډارول- ېیرول- زېرول- ترمول-

ترولے:(ت-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترولی- مؤنث ترولې- وګوری ترول-

تروم:(تروم)اسم- واحد- مذکر- ترُم- ناخصی حېوان-

ترومې:(ترو-مي)اسم- ګوټ- غرپ-

ترون:(ت-ر-ون)حاصل مصدر- وګوری ترول-

ترونده:(تر-ون-ده)اسم- واحد- مؤنث- خورندے- نوې رارسېدلې مېوه-

ترونکے:(ت-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترونکی- مؤنث ترونکې- وګوری ترول-

ترونګ:(ت-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګوری ترول-

ترونه:(ت-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری ترول-

تروول:(تر-و-ول)مصدر متعدی- تریوول-

تروه:(تر-وه)اسم- تروبے- سرکه- (افغانستان)-

تروه:(تر-وه)اسم- واحد- مؤنث- کېړ- چچکے- لهٔ منجو، جینجړو یا لُوخې جوړ هغه چچکے چې اکثر پهٔ کوټه اچولے شی- جمع تروې-

تروه:(تر-وه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)دُ تریو مؤنث- (۲)تومنه- خمبیره- (۳)پنیر- جمع تروې-

ترومول:(ترو-ه-ول)مصدر متعدی- زېرول- ډارول-

ترومولے:(ترو-ه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترومولی- مؤنث ترومولې- وګوری ترومول-

ترومون:(ترو-ه-ون)حاصل مصدر- وګوری ترومول-

ترومونکے:(ترو-ه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترومونکی- مؤنث ترومونکې- وګوری ترومول-

ترومونګ:(ترو-ه-ونګ)حاصل مصدر- وګوری ترومول-

ترومونه:(ترو-ه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری ترومول-

ترویج:(تر-ویج)اسم- رواجونه- دودونه- (م- عربی)-

ترویجول:(تر-وی-ج-ول)مصدر متعدی- رواجول- بابول- دودول- پراخول- (افغانستان)-

ترویر:(تر-ویر)اسم- (۱)ټګی- فرېب- دوکه- چل- غولونه- خطا ایستنه- (۲)غم و فکر- اندېښنه- وسواس- (افغانستان)- (م- شاید عربی تزویر)-

ترږې:(تر-وي)اسم- جمع- مؤنث- شوملې- شړومبې- شلومبې- شنبېې- جاږ-

ترږے:(تر-ږے)اسم- واحد- مذکر- یو دست آوز بوټے چې پهٔ دارو کښې

پکاریږي- نباتاتي نوم کان ول ولس او اپیومیا تړبې تهم-

ترویت:(تر-ویتَ)اسم- واحد- مذکر- دَ نجوم علم- فال معلومونه- دَ فال معلومولو علم- (۲)فال کړي- پال کړي-

ترویتي:(تر-وې-تي)اسم- واحد- مذکر- نجومي- توریتي- پال کړے- دَ ستوریو پهٔ علم پوهېدونکے-

ترویتې:(تر-وې-تے)اسم- واحد- مذکر- وُګوری ترویتي-

تروېخه:(تر-وې-خه)اسم- واحد- مؤنث- رخه- سخه- سونده- اوور- حسد- رقابت- جمع تروېخې-

تروېدل:(تر-وې-دَل)مصدر لازم- تریوېدل- تروشېدل- تپوکېدل- تاکېدل- مالګین کېدل-

تروېدن:(تر-وې-دن)حاصل مصدر- وُګوری تروېدل-

تروېدنګ:(تر-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری تروېدل-

تروېدنه:(تر-وې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وُګوری تروېدل-

تروېدونکے:(تر-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تروېدونکي- مؤنث تروېدونکې- وُګوری تروېدل-

تروېدهٔ:(تر-وې-دهٔ)حاصل مصدر از دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وُګوری تروېدل-

تروے:(تر-وے)اسم- واحد- مذکر- وُګوری تروګے- جمع تروي-

تروے:(تر-وے)اسم- واحد- مذکر- منج- (افغانستان)-

تره:(ت-ره)صفت- مؤنث- دَ تر مؤنث- لونده- لمده-

تره:(ت-ره)اسم- واحد- مؤنث- ترازه- پره- تپوته- جمع ترې-

تره:(ت-ره)اسم- واحد- مؤنث- کړنکوړے- دَ بادرنګ دَ کورنۍ یوه سبزي چې وُړده وي- نباتاتي نوم ککمس ایکیوټېنګولس- جمع ترې-

تره:(تره)اسم- واحد- مؤنث- بدن- وجود- جوثه- څېره- رنګ- جُثه-

تره:(ت-ره)اسم- واحد- مؤنث- ناوه- تری- پرناله-

تره:(ت-ره)اسم- واحد- مؤنث- ترهه- خوف- ویره- جمع ترې-

تره:(ت-ره)حرف تشبیهٔ- غُندې- پهٔ شان- پهٔ رنګ- (م- عربی)-

تره پړ:(تره-پړ)اسم- واحد- مذکر- دَ شلېدلو جامو تپوته- چیرړه- زړوکے- زړونکے- ګودړ- خرڅوړے- خنجاړے-

تره تیزک:(ت-ره-تی-زک)اسم- وُګوری ترتیزک-

تره خولے:(ت-ر-خو-لے)اسم- واحد- مذکر- تورخولے- تورخُلے- مغه کړ یا چېلے چې خُله ئې توره وي-

تره خون:(ت-ره-خُون)اسم- تیارهٔ- دَ نمابنام خره- وُګوری تره غوني-

تره غون:(ت-ره-غُون)اسم- وُګوری تره غوني-

تره غوني:(ت-ره-غو-ني)اسم- دَ نمابنام تیارهٔ- تروږمي- تېره غوني- تره خون- تره غون-

تره مر:(ت-ره-مر)اسم- ترار- وېرېدنه-

ترهٔ:(ترهٔ)اسم- واحد- مذکر- کاکا- دَ پلار ورور- چاچا- هر مشر سړی ته دَ احترام توري-

ترها:(تر-ها)اسم- واحد- مؤنث- تره- ترهه- وېره- پار-

ترهات:(ت-ر-هات)اسم- جمع- دَ ترهت جمع- بې بنیاده خبرې- بې موده کارونه- بې فائدې څیزونه-

ترهاری:(تر-ها-ری)اسم صفت- ترهېدونکے- وېرېدونکے- تراری-

ترهاؤ:(تر-هاؤ)اسم- واحد- مذکر- تراؤ- دَ اوړی دربمه برخه- دَ غلې یوه پیمانه-

ترهره:(تر-هه-ره)اسم- واحد- مؤنث- ترهه- تره- پار- وېره- یېره- جمع ترهرې-

ترهړ:(تر-هړ)اسم- واحد- مذکر- ویره- ترهه- تره- ترامه-

ترهړه:(تر-ههٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث دَ ترهړ ځاې- دَ ویرې ځاې-

ترهند:(تر-هند)اسم- ترند- ترهندونے- وېرندوکے-

ترهندتوب:(تر-هند-توب)اسم- ترهندتیا- ترهندوالے- ترهېدنه-

ترهندتیا:(تر-هند-تیا)اسم- وُګوری ترهندتوب-

ترهندوالے:(تر-هند-وا-لے)اسم- وُګوری ترهندتوب-

ترهوال:(تر-هه-وال)اسم صفت- وېرونکے- رعب ناک- سهم ناک- (افغانستان)-

ترهور:(تر-هور)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ترند- پېر زيات ناترار- وېرېدلے- وارخطا- مګ پګ- حیران- (۲)ړوند- بې سترګو-

ترهورتیا:(تر-هور-تیا)اسم- ازارګي- پرېشاني- اضطراب- وارخطائي-

ترهورول:(تر-هو-ر-ول)مصدر متعدی- وُګوری ترورول-

ترهورون:(تر-هو-ر-ون)حاصل مصدر- وګوری ترهورول-

ترهورونکے:(تر-هو-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترهورونکي- مؤنث ترهورونکې- وُګوری ترهورول-

ترهورونه:(تر-هو-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وُګوری ترهورول-

ترهوری:(تر-هو-ری)اسم- وارخطائي- ویره- تره- پار-

ترهول:(تر-هٔ-ول)مصدر متعدی- (۱)وېرول- پارول- (۲)دَ پرهر اُبهٔ پېتول-

ترهولے:(تر-هٔ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترهولي- مؤنث ترهولې- وُګوری ترهول-

ترهون:(تر-هٔ-ون)حاصل مصدر- وُګوری ترهول-

ترهونګ:(تر-هٔ-ونګ)حاصل مصدر- وګوری ترهول-

ترهونه:(تر-هٔ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وُګوری ترهول-

ترهه:(تره-هه)اسم- واحد- مؤنث- تره- پار- زیره- بیره- یېره- ترس- خوف- اندېښنه-

ترهېدا:(تر-هې-دا)اسم- پارېدا- وېرېدا- ترېدا- وېرېدنه- پارېدنه- ترهېدهٔ-

ترهېدل:(تر-هې-دل)مصدر لازم- ترېدل- وېرېدل- پارېدل- وارخطا کېدل-

ترهېدلے:(تر-هې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترهېدلي- مؤنث ترهېدلې- وُګوری ترهېدل-

ترهېدن:(تر-هې-دن)حاصل مصدر- وُګوری ترهېدل-

ئ (ځي-رل)، ي (مي-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وُګوری تشریحات صفحه ۱

ترهېدنګ:(تر-هې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ترهېدل-

ترهېدنه:(تر-هې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترهېدل-

ترهېدونکے:(تر-هې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترهېدونکي- مؤنث ترهېدونکې- وګورئ ترهېدل-

ترهېدهٔ:(تر-هې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ترهېدل-

ترې:(تَ-رې)اسم- چیني- شکره- بوره- د پخواني زمانې يوه ډېره مېده سپينه بوره-

ترې:(تَ-رې)اسم- د خشکۍ ضد- نمداره زمکه- نم- شبنم- تازګي-

ترې:(ترې)اسم- واحد- مؤنث- د جوارو د دانې هغه مخ چې درې سرهٔ ټکي پرې نقش وي او د ګټې کور ګڼلے شي-

ترې ترې:(تَ-رې-تَ-رې)اسم صوت- د ربړو خرڅولو اواز-

ترې مار:(تَ-رې-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- ټرنګچي- بګلچي-

تریا تریا:(تر-یا-تر-یا)اسم صوت- سپي له حوصله ورکونه- سپے باده کونه-

تریاق:(تر-یاق)اسم- (۱)د زهرو اثر ختمونکے يو قسم دارو- زهرمهره- (۲)اپیم- ترياک- (م- فارسي)-

ترياک:(تر-ياک)اسم- اپيم-

ترياکي:(تر-يا-کي)اسم صفت- جنډوباز- اپيمي-

تريب:(تريب)صفت- ترش- تريو- (افغانستان)-

تريبه:(ترې-به)اسم- واحد- مؤنث- مولۍ- نباتاتي نوم ريفنس سټيوس -(RAPHANUS SATIVUS)

تريټ:(تريټ)اسم- کل- کنجاړه- کنجوره- کونجاړه- ترید- ګوتاره-

تريتے:(تَ-رې-تے)اسم- د تور مرچ پهٔ شان يوه غوټيزه وَنه او د هغې دانې چې د دارو پهٔ توګه هم استعماليږي او خلق ترې نګولے هم جوړوي- (افغانستان)-

تريج:(تَ-ريج)اسم- واحد- مذکر- (۱)تېز (خول)- (۲)طاقتور- شول- (م- عربي)-

تريخه:(تَ-رې-خه)اسم- واحد- مؤنث- سينګلے- شمکے- يو قسم واښهٔ- جمع تريخې-

تريچے:(ترې-چے)اسم- تروپے- يو قسم تريو ساګ- جمع تريچي-

تريخ:(تريخ)اسم صفت- (۱)د خوږ ضد- د مرچکي پهٔ شان خوند لرونکے- (۲)غصه ناک- سخت مزاجه- خشکي- (۳)ګران- سخت- مشکل- بې خونده- خراب- (۴)غېرتي- ممتي- مرني-

تريخ بخن:(تريخ-ب-خن)اسم صفت- تريخ غُندې- تريخ شان- تريخ ته نژدې- چې خوند ې تريخ شان وي-

تريخ بوټے:(تريخ-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ساګ-

ترتخ توب:(تريخ-توب)اسم- تريختيا- تريخ والے- تريخ خوندې-

تريخ توری:(تريخ-تو-رې)اسم- واحد- مؤنث- ترخه توري- کربله- د تريخ خوند لرونکې يوه ترکاري- (افغانستان)- د نباتاتي نوم د پاره وګورئ ترخه توري-

تريختيا:(تريخ-تيا)اسم- وګورئ تريخ توب-

تريخ خانے:(تريخ-خا-نے)اسم صفت- تريخ خوئ لرونکے- خشکي- غصه ناک- قهرژن- جمع تريخ خاني-

تريخ ژبے:(تريخ-ژهٔ-بے)اسم صفت- بد خويه- بد خُلے-

تريخ ژن:(تريخ-ژن)اسم صفت- (۱)تريخ بخن- لږ شان تريخ خوند لرونکے- (۲)غصه ناک- قهرژن- خشکي- مؤنث تريخ ژنه- جمع مؤنث تريخ ژنې-

تريخ درياب:(تريخ-در-ياب)اسم- کالي درياب- کاړي درياب- قاړي درياب- سمندر-

تريخ لوړے:(تريخ-لو-ړے)اسم صفت- لږ شان تريخ خوند لرونکے-

تريخ لوکے:(تريخ-لو-کے)اسم- وګورئ خروسکه-

تريخوالے:(تريخ-وا-لے)اسم- وګورئ تريخ توب-

تريخ وروځے:(تريخ-ورو-ځے)اسم صفت- ترش ريو- تريو مخ- بد دماغه- چې تندے ې تريخ نيولے وي-

تريخول:(ترې-خه-ول)مصدر متعدي- ترخول- تريخ کول- پهٔ يو څيز يا يوه خبره کښې تريخ والے پيدا کول-

تريخون:(ترې-خه-ون)حاصل مصدر- وګورئ تريخول-

تريخونکے:(ترې-خه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تريخونکي- مؤنث تريخونکې- وګورئ تريخول-

تريخونګ:(ترې-خه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تريخول-

تريخونه:(ترې-خه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تريخول-

تريخېدل:(ترې-خې-دل)مصدر لازم- (۱)ترخېدل- تريخ کېدل- خوند خرابېدل- (۲)غصه کېدل- خشکي کېدل- قهرژن کېدل-

تريخېدن:(ترې-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تريخېدل-

تريخېدنګ:(ترې-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تريخېدل-

تريخېدنه:(ترې-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تريخېدل-

تريخېدونکے:(ترې-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تريخېدونکي- مؤنث تريخېدونکې- وګورئ تريخېدل-

تريخېدهٔ:(ترې-خې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ تريخېدل-

تريخے:(ترې-خے)اسم- واحد- مذکر- (۱)زهره- زاره- د انسان او حيوان پهٔ ګېډه کښې دننه يو اندام- (۲)ننګ- غيرت- جمع تريخي-

تريز:(تريز)اسم- واحد- مذکر- کاسني- شمکے- يو قسم واښهٔ- نباتاتي نوم وربينا او فی سين-

تريره:(ترې-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)روغاني- روغني کُلچه- خوږ ککوړے- پهٔ تنارهٔ پخه هغه غوړه ډوډۍ چې پهٔ اوړه کښې ې غوړي اخښلي وي- (۲)پاسته- څپټے- کاک- ټيکي- ټکي-

ترېل:(تَ-رَ-يِل/تره-يِل)مصدر- ګوزارول- اچول-

ترېلے:(تَره-يۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترېلي- مؤنث ترېلې-
وګورئ ترېل-

ترېن:(تره-يِن)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېل-

ترېناک:(تَ-رې-ناک)اسم صفت- (۱)ترهند- تورند- تيورند- ترند- وحشي-
(۲)زور باز- ساتلے باز- ښکاری باز- اموخته باز-

ترېناکه:(ته-رې-نا-که)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم مرغۍ-

ترېنداره:(تَرېن-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- د تره ښځه- تنداره- چاچي-

ترېنګ:(تَره-يِنګ)حاصلِ مصدر- (۱)وګورئ ترېل- (۲- اسم)غصه- تاؤ-

ترېنګړ:(تَرېنګ-ګړ)اسم- بجه- مانجه- باجه- د موسيقۍ درې ګټيزه اله-

ترېنګړی:(تَرېنګ-ګ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ترېنګړی- ترېنګلۍ-
چوټکۍ- پشکوړے-

ترېنګل:(تَرېنګ-ګل)مصدر- چوټل- (۱)ترېوول- بوټېدل- (۲)راکښلے کېدل-
غصه کېدل-

ترېنګلۍ:(تَرېنګ-ګ-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ترېنګړی-

ترېنګلے:(تَرېنګ-کۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترېنګلي- مؤنث
ترېنګلې- وګورئ ترېنګل-

ترېنګلے:(تَرېنګ-کۀ-لے)اسم صفت- (۱)ترېو- ترېو تندے- بد خويه- ترېو
مخے- د ترېو تندي خاوند- بد مزاجه- بد خويه- خروس- (۲)بخيل-

ترېنګن:(تَرېنګ-ګن)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېنګل-

ترېنګنګ:(تَرېنګ-ګنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېنګل-

ترېنګنه:(تَرېنګ-کۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېنګل-

ترېنګونکے:(تَرېنګ-ګون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترېنګونکي-
مؤنث ترېنګونکې- وګورئ ترېنګل-

ترېنګۍ:(تَرتېنګ-کۍ)اسم- نرے اواز- د نرۍ اواز ړمامه-

ترېنګۍ:(تَرېنګ-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تېره کانړے چې مرغۍ پرې
حلالېدے شي-

ترېنګے:(ترېنګ-کے)اسم- واحد- مذکر- کته پيش- کړوپش- پنه پيش- پيش
پړانګ- ځنګلي پيشو-

ترېنه:(تَره-يۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېل-

ترېو:(تَرېو)اسم صفت- (۱)تروش- تَرش- تپاک- (۲)غصه ناک- تهرېدلے-

ترېوبخن:(تَرېو-بَ-خن)اسم صفت- ترېو غندې- ترېو شانې- ترش شان
خوند لرونکے-

ترېوترېوکے:(تَرېو-ترې-ؤ-کے)اسم- تروؤکے- تروکے- ترېو خوند لرونکے
يو قسم ساګ-

ترېوتوب:(تَرېو-توب)اسم- تُرشي- ترېوتيا- ترېووالے-

ترېوتيا:(تَرېو-تيا)اسم- وګورئ ترېوتوب-

ترېوخوړے:(تَرېو-خوَ-ړے)اسم- مانی خَش- شکنجبين- يو قسم ترېو غندې
شربت چې د اُبو، سرکې او نيمبو نه جوړېږي- (افغانستان)-

ترېوخوندے:(تَرېو-خون-دے)اسم صفت- تروش خوندے- ترېوبخن- تپاک
خوندے-

ترېوړے:(تَرېو-ړے)اسم- واحد- مذکر- نکوړے- ننکوړے- بادرنګ- بادړنګ-
جمع ترېوړي- نباتاتي نوم کوکومس تې وس-

ترېوژن:(تَرېو-ژن)اسم صفت- ترېو- ترش- لږ شان ترېو خوند لرونکے-

ترېوغالے:(تَرېو-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- د ښځو د قميص د سينې جېب-

ترېوکے:(ترې-ؤ-کے)اسم- واحد- مذکر- يو ترېو خوند لرونکے ساګ-
ترېوترېوکے-

ترېو مخے:(تَرېو-مۀ-خے)اسم صفت- وګورئ ترېو تندے-

ترېوناک:(تَرېو-ناک)اسم صفت- تروش خونده- ترېو خونده- تپاک خونده-
تېوک خوندے-

ترېونکے:(تَره-يون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترېونکي- مؤنث
ترېونکې- وګورئ ترېل-

ترېونکولے:(تَرېو-نکو-لے)اسم- (۱)چټني- اچار- (۲)هغه خوارۀ چې ترېو
خوند لري- (افغانستان)-

ترېووالے:(تَرېو-وا-لے)اسم- وګورئ ترېوتوب-

ترېووزمه:(تَرېو-وز-مه)اسم- ترېو شانې- لږ شان ترېو- ترېو خوندے-
ترېوناک- ترو بدو ته نژدې- (افغانستان)-

ترېوول:(تَرېو-و-ول)مصدر متعدی- ترېو کول- تروش کول- مالګين کول-
تروشول-

ترېوون:(تَرېو-ؤ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېوول-

ترېوونکے:(تَرېو-ؤ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترېوونکي-
مؤنث ترېوونکې- وګورئ ترېوول-

ترېوونګ:(تَرېو-ؤ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېوول-

ترېوونه:(تَرېو-ؤ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېوول-

ترېوی:(ترې-وی)اسم- واحد- مؤنث- يوه غرڅنې ونه او د هغې تروې دانې-

ترېوېدل:(تَرې-وې-دل)مصدر لازم- (۱)ترووېدل- تَرشېدل- مالګين کېدل-
(۲)خفه کېدل- قهرېدل-

ترېوېدن:(تَرې-وې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېوېدل-

ترېوېدنګ:(تَرې-وې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېوېدل-

ترېوېدنه:(تَرې-وې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېوېدل-

ترېوېدونکے:(تَرې-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ترېوېدونکي-
مؤنث ترېوېدونکې- وګورئ ترېوېدل-

ترېوېده:(تَرې-وې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ ترېوېدل-

ترېه:(تَر-يه)اسم صوت- ړرے- د کڅو چېلو د شړلو اواز- ړريه-

ترېنې:(ترې-نې)اسم- واحد- مؤنث- ترۍ- پرناله- ناوه-

ترې:(ترې)حرف- ترې نه- ځنې- لۀ هغۀ- څخه-

تربټه:(ترې-ټه)اسم- واحد- مؤنث- تروټه- بوجۍ- دَ غلې بوجۍ-

تربېدل:(تَ-رې-دَل)مصدر لازم- ترمېدل- ويرېدل- ډارېدل-

تربېدل:(تُ-رې-دَل)مصدر لازم- تُولېدل- ورو ورو تلل- (ش- پنجابي)-

ترېدلے:(تَ-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ترېدلي- مؤنث ترېدلې- وګورئ ترېدل-

ترېدلے:(تُ-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تُرېدلي- مؤنث تُرېدلې- وګورئ تُرېدل-

ترېدن:(تَ-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ترېدل-

ترېدن:(تُ-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تُرېدل-

ترېدنګ:(تَ-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تَرېدل-

ترېدنګ:(تُ-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تُرېدل-

ترېدنه:(تَ-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترېدل-

ترېدنه:(تُ-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تُرېدل-

ترېدونکے:(تَ-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تَرېدونکي- مؤنث تَرېدونکې- وګورئ تَرېدل-

ترېدونکے:(تُ-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تُرېدونکي- مؤنث تُرېدونکې- وګورئ تُرېدل-

ترېدهٔ:(تَ-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تَرېدل-

ترېدهٔ:(تُ-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تُرېدل-

ترېړ:(تَ-رېړ)اسم- واحد- مذکر- تورے- زوړ او بې کاره سامان-

ترېړه:(تَ-رې-ړه)اسم- واحد- مونث- لړه- خُوپ- بُخار- دُوند-

ترېړے:(تَ-رې-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ اُبو تالاؤ-

ترېل:(ترېل)اسم- واحد- مذکر- لويُ ډنډ- وګورئ ترېړے-

ترېل:(ترېل)اسم- واحد- مذکر- پتنوس- دَ چايو دَ لوښو دَ وړلو راوړلو مجمه- ټرے- (م- انګريزي- ټرے)-

ترېلے:(تَ-رې-لے)اسم- واحد- مذکر- ترېل- حوض- ډنډ- ګود- اوډ- وسته- خړيج- جمع ترېلي-

ترئ:(تَ-رئ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اُخور- دَ مېچنې مغه ځائ چې اوړهٔ پکښې ټوليږي- (افغانستان)-

ترئ:(تَ-رئ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تره- ناوه- پرناله- (۲)پېچومے-

ترئ:(ترئ)اسم متعلق فعل- (۱)خُفيه- (۲)پهٔ پټه- پهٔ غلا- خُفيه-

ترئ:(تَ-رئ)اسم- واحد- مؤنث- دَ دوؤ غرونو پهٔ منځ کښې يا لمن کښې تېره شوې لاره- (افغانستان)-

ترئ والے:(ترئ-وا-لے)اسم- رمز- پټ-

ترے:(تهٔ-رے)اسم- اثر- نښه- نښانه-

ترے:(تهٔ-رے)اسم صوت- کچې- ارې- دَ بزې دَ شړلو اواز-

ترے تم:(تَ-رے-تم)صفت- ناڅاپه غائب- ناڅاپه ورک- ناساپه لهٔ سترګو پنا-

تړ:(تړ)اسم- (۱)شرط- (۲)غُټه- غنډه- ګنډه- (۳)دَ اُبو بند- (۴)لويه ګټه- تيږه- (۵)تجويز- قرارداد- (۶)اتفاق- تړون-

تړازه:(تَ-ړا-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترازه-

تړاق:(تړاق)اسم صوت- تړاک- تړق- تړک- دَ څيز دَ ماتېدو اواز- دَ لرګي دَ ماتېدو يا ماتولو اواز-

تړاق پړاق:(تړاق-پړاق)اسم صوت- دَ ګوذار اواز-

تړاقول:(تړا-قَ-وَل)مصدر متعدي- پهٔ سخت څيز وهل- تړقول- پړق ورکول-

تړاقون:(تړا-قَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تړاقول-

تړاقونګ:(تړا-قَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تړاقول-

تړاقونه:(تړا-قَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تړاقول-

تړاقونکے:(تړا-قَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تړاقونکي- مؤنث تړاقونکې- وګورئ تړاقول-

تړاقي:(تَ-ړا-قي)اسم- وګورئ تړاقي-

تړاقېدل:(تړا-قې-دَل)مصدر لازم- پهٔ زوره وهلے کېدل- پړقېدل-

تړاقېدن:(تړا-قې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تړاقېدل-

تړاقېدنګ:(تړا-قې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تړاقېدل-

تړاقېدنه:(تړا-قې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تړاقېدل-

تړاقېدونکے:(تړا-قې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تړاقېدونکي- مؤنث تړاقېدونکې- وګورئ تړاقېدل-

تړاقېدهٔ:(تړا-قې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تړاقېدل-

تړاقئ:(تَ-ړا-قئ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تړاکے- تړاکئ- تڼاکئ- چوټے- لنګوټے- تړکے- وړوکے لنګ- تړاقي-

تړاک:(تَ-ړاک)اسم- واحد- مذکر- (۱)صف- قطار- (۲)خوا- ډډه- اړخ- جمع تړاکونه-

تړاک:(تړاک)اسم صوت- تړک- تړاق- تړق- دَ څهٔ څيز دَ ماتېدو اواز- دَ يو څيز دَ غُرځېدو او لګېدو اواز- دَ څهٔ څيز دَ چودلو اواز-

تړاکي:(تَ-ړا-کي)اسم- واحد- مؤنث- دَ چرچڼې مومره يوه ښائسته مرغۍ-

تړاکئ:(تَ-ړا-کئ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ تړاقئ-

تړاکے:(تَ-ړا-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تړاقي-

تړانکه:(تړانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پولۍ- تڼاکه- (۲)بړبوکۍ- بوړبوړقۍ- جمع تړانکې-

تړانکه:(تړانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- چيرړه- ريشه- دَ کپړې لويه ليتاړه- ريتاړه- (۲)دَ زمکې وړده ټوکړه- ريښکۍ- جمع تړانکې-

تړانکې برانکې:(تړانګ-کې-برانګ-کې)اسم صفت- ټکړې ټکړې- ذرې ذرې- ټوټې ټوټې- تړانکې تړانکې- ليتاړې ليتاړې- ريښکۍ ريښکۍ- پړانکې پړانکې-

ټرانګې ټرانګې:(ټرانګ-ګې-ټرانګ-ګې)اسم صفت- وګورئ ترانګې ترانګې-

ټراؤ:(تهٔ-راؤ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کرو- دٔ جریب پېمانه کولو پړے- تناؤ- طناب- (۲)رابطه- تعلق- رشته- نسبت- جمع ټراؤګان-

ټراوه:(ټ-را-وه)اسم- واحد- مؤنث- ټرون- رابطه- جمع ټراوې- (افغانستان)-

ټربوخه:(ټر-بو-خه)اسم- دوپ- خوپ- ترخه او بدبويه هوا- هغه هوا چې دٔ کېي کونې لهٔ کبله دوپ ژنه او بدبويه شي- تربوخته- تربخته-

ټرپ:(ته-رپ)اسم- مذکر- (۱)ناقراری- بې ارامي- (۲)تندی- تېزی- جلتی- تلوار- چابکی- (۳)بې صبری- (افغانستان)-

ټرپ:(ټرپ)اسم صوت- (۱)پهٔ زمکه دٔ پلن څيز دٔ راغورځېدو اواز- (۲- اسم)څپېړه- شرق-

ټرپا:(ټره-پا)اسم- (۱)وهنه- پهٔ څپېړو وهنه- (۲)وګورئ ټرپهار- (اسم صوت)-

ټرپار:(ټر-پار)اسم- (۱)وهنه- پهٔ څپېړو وهنه- (۲)وګورئ ټرپهار- (اسم صوت)-

ټرپول:(ټره-پ-ول)مصدر متعدی- (۱)ټپول- ټوپلول- (۲)ناقلاره کول- (۳)تپول- ښورول- (۴)وهل-

ټرپولے:(ټره-پ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ټرپولی- مؤنث ټرپولې- وګورئ ټرپول-

ټرپون:(ټره-پ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټرپول-

ټرپونکے:(ټره-پ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ټرپونکی- مؤنث ټرپونکې- وګورئ ټرپول-

ټرپونګ:(ټره-پ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټرپول-

ټرپونه:(ټره-پ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرپول-

ټرپهار:(ټره-پ-هار)اسم- (۱)پهٔ څپېړو وهنه- ټرپار- دٔ اوبو دٔ خڅلېدو اواز- (۲)پهٔ اُبو کښې دٔ غورځېدو يا لاس پښو وهلو اواز- دٔ ټرپ ټروپ اواز ابستنه- (اسم صوت)-

ټرپېدل:(ټره-پې-دل)مصدر لازم- (۱)ټپېدل- (۲)بې ارامه کېدل- ناقلاره کېدل- (۳)پهٔ اُبو کښې دٔ ټرپ ټروپ اواز ايستلے کېدل- (۴)وهلے کېدل-

ټرپېدلے:(ټره-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ټرپېدلی- مؤنث ټرپېدلې- وګورئ ټرپېدل-

ټرپېدن:(ټره-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټرپېدل-

ټرپېدنګ:(ټره-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټرپېدل-

ټرپېدنه:(ټره-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرپېدل-

ټرپېدونکے:(ټره-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ټرپېدونکی- مؤنث ټرپېدونکې- وګورئ ټرپېدل-

ټرپېدهٔ:(ټره-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صيغه- وګورئ ټرپېدل-

ټرټرو:(ټر-ټ-رو)اسم- مذکر- دٔ مرۍ غټه- ګړګړو- کوړکوټو-

ټرټری:(ټر-تهٔ-ړی/ټر-ټ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دٔ ټرټرې مؤنث- وګورئ ټرټرے-

ټرټرے:(ټر-تهٔ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټوړے- تتړے- چاړے- ترژبے- هغه څوک چې ژبه ئې نښلي- جمع ټرټری- مؤنث ټرټرې-

ټرتقه:(ټر-ت-قه)اسم- واحد- مؤنث- ټرتکه- دٔ ناقرارۍ او درد لهٔ کبله ټوپ- دٔ حلال کړی څاروی ټوپ- پړتکه- جمع ټرتقې-

ټرتک:(ټر-تک)اسم- (۱)ناقراری- بې ارامي- (افغانستان)- (۲)دٔ ناقرارۍ او درد لهٔ کبله ټوپ- دٔ حلال کړی مارغهٔ يا څاروی ټوپ- پړتکه- ټرتقه-

ټرتکه:(ټر-ت-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټرتقه-

ټرژبے:(ټر-ژهٔ-بے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټرټرے- ټرټرے- جمع ټرژبی-

ټرس:(ټرس)اسم صوت- دٔ لرګی يا نورو څيزونو دٔ ماتېدو، غورځېدو يا پهٔ څپېړه دٔ چا دٔ وهلو اواز-

ټرسا:(ټره-سا)اسم صوت- (۱)دٔ لرګی يا نورو څيزونو دٔ ماتېدو پرله پسې اواز- (۲)ټرکا- ټرقا- دٔ څپېړو وهلو پرله پسې اواز-

ټرسمار:(ټ-رس-مار)اسم- (۱)ټريسمار- پرله پسې اوازونه- دٔ ټوپک دٔ ګوليو اوازونه- (۲)ګرمي- سخته ګرمي-

ټرق:(ټرق)اسم صوت- (۱)ټرک- پهٔ بټ کښې دٔ نينو دٔ وريتېدو اواز- (۲)دٔ لرګی دٔ چاودلو اواز- (۳)دٔ دوؤ څيزونو پهٔ خپل مينځ کښې دٔ جنګېدو اواز- (۴)پړق-

ټرقار:(ټره-قار)اسم صوت- وګورئ ټرقهار-

ټرق پړق:(ټرق-پړق)اسم- (۱)سمدستی چاودنه- (۲)سمدستی مرګ- (۳)انا ً فانا ً- (متعلق فعل)-

ټرق ټروق:(ټرق-ټروق)اسم- (۱)شور- وهنه ټکونه- (۲)دٔ څهٔ څيز دٔ ماتېدو اواز- (اسم صوت)-

ټرقول:(ټره-ق-ول)مصدر متعدی- پړقول- پهٔ بټ کښې نينې وريتول- پهٔ سکروټو وريتول-

ټرقولے:(ټره-ق-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ټرقولی- مؤنث ټرقولې- وګورئ ټرقول-

ټرقون:(ټره-ق-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټرقول-

ټرقونکے:(ټره-ق-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ټرقونکی- مؤنث ټرقونکې- وګورئ ټرقول-

ټرقونګ:(ټره-ق-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټرقول-

ټرقونه:(ټره-ق-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرقول-

ټرقهار:(ټره-ق-هار)اسم صوت- (۱)ټرقار- دٔ ګوزار اواز- (۲)دٔ ړزو اواز- ټريسمار-

ټرقېدل:(ټره-قې-دل)مصدر لازم- پهٔ بټ کښې دٔ نينو وريتېدل- پهٔ سکروټو وريتېدل- (۲)ټپېدل- ټقېدل-

ترقېدلے:(ترٖه-قې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع ترقېدلي- مؤنث ترقېدلې- وګورئ ترقېدل-

ترقېدن:(ترٖه-قې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقېدل-

ترقېدنګ:(ترٖه-قې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقېدل-

ترقېدنه:(ترٖه-قې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقېدل-

ترقېدونکے:(ترٖه-قې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ترقېدونکي- مؤنث ترقېدونکې- وګورئ ترقېدل-

ترقېدهٔ:(ترٖه-قې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ترقېدل-

ترک:(ترک)اسمِ صوت- وګورئ ترق-

ترړ:(تَ-ړک)اسم- واحد- مذکر- دَ منرکانو دَ نیولو لپٔ- کورکی- پنجره-

ترکا:(ترٖه-کا)اسمِ صوت- (۱)ټکا- ترسا- ترکار- ترکهار- (۲)دَ دوؤ ځیزونو پخپلو کښې دَ جنګېدو پرله پسې اواز- (۳)دَ لاس دَ پړقولو اواز- (۴)دَ ټوپک دَ ګولیو پرله پسې اواز- (۵)دَ پړق اواز-

ترکار:(ترٖه-کار)اسمِ صوت- وګورئ ترکا-

ترکانې:(ترٖ-کا-نې)اسم- واحد- مذکر- توري توري داني لرونکے یو قسم بوټے او دَ هغهٔ داني- جمع ترکانې- (افغانستان)-

ترک تروک:(ترٖک-ترٖوک)اسم- وګورئ ترق تروق-

ترکن:(ترهٔ-کن)اسمِ صفت- مذکر- ډرپوک- بزدل- ډرتن- ډرن- ډرن- ویرېدونکے-

ترکول:(ترٖه-ک-ول)مصدرِ متعدی- وګورئ ترقول-

ترکون:(ترٖه-ک-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقون-

ترکونکے:(ترٖه-ک-ون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکونکي- مؤنث ترکونکې- وګورئ ترقون-

ترکونګ:(ترٖه-ک-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقون-

ترکونه:(ترٖه-ک-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقون-

ترکه:(ترٖه-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټکه- ډبره- تندر- (۲)دَ مردکیو ټیکانو لوبه- جمع ترکې-

ترکه:(تَ-ړ-که)اسم- واحد- مؤنث- دباؤ- درکه- ګواښ- پورته پورته کېدنه- (افغانستان)-

ترکه:(ترٖ-که)اسم- واحد- مؤنث- داغ- دَ سرو کړو غوړیو بکار- ترکه- (افغانستان)-

ترکهار:(ترٖه-ک-هار)اسمِ صوت- وګورئ ترکا-

ترکېدل:(ترٖه-کې-دل)مصدرِ لازم- وګورئ ترقېدل-

ترکېدن:(ترٖه-کې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقېدن-

ترکېدنګ:(ترٖه-کې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقېدنګ-

ترکېدنه:(ترٖه-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترقېدنه-

ترکېدونکے:(ترٖه-کې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکېدونکي- مؤنث ترکېدونکې- وګورئ ترقېدونکے-

ترکېدونے:(ترٖه-کې-دو-نے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ترکېدوني- مؤنث ترکېدونې- وګورئ ترکېدل-

ترکېدهٔ:(ترٖه-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ترقېدن-

ترکے:(تَ-ړ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تراقی-

ترکے:(تَ-ړ-کے)اسم- واحد- مذکر- بچکے- دَ مچقنې دَ سر هغه نرے تار چې دَ کانې دَ ویشتو پهٔ وخت پرېښوے کیږی او اواز تري وځي- (افغانستان)-

ترل:(تَ-ړل)مصدر- (۱)دَ دوؤ یا زیاتو ځیزونو تر مینځه تعلق پیدا کول- (۲)غټه ورکول- (۳)بندول- (۴)پابندول- پابند کول- (۵)جوړول- (۲)دَ تار، مزی یا پړی پهٔ ذریعه سره نښلول-

ترلیک:(ترٖ-لیک)اسم- قرارداد- لوظ نامه- دَ فیصلې لیک- معاهده-

ترلے:(تَ-ړهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع ترلي- مؤنث ترلې- وګورئ ترل-

ترم:(تهٔ-ړم)اسمِ صفت- مذکر- لږ شان ګرم- نیم ګرم- تومن- (افغانستان)- مؤنث ترمه- جمع مؤنث ترمې-

ترماتې:(ترٖ-ما-تې)صفت- دَ "ترماتے" مؤنث- وګورئ ترماتے-

ترماتے:(ترٖ-ما-تے)اسمِ صفت- مذکر- لږ شان ګرم- مؤنث ترماتې-

ترمبه:(ترٖم-به)اسم- واحد- مؤنث- هغه روټۍ چې پهٔ مستو او شوملو کښې دَ خوراک دَ پاره مبده شوې وی- (افغانستان)-

ترمتوب:(تهٔ-ړم-توب)اسم- ترمتیا- ترموالے- لږ شان ګرم والے- کم تود والے-

ترمتیا:(تهٔ-ړم-تیا)اسم- وګورئ ترمتوب-

ترموالے:(تهٔ-ړم-وا-لے)اسم- وګورئ ترمتوب-

ترمول:(ترٖ-م-ول)مصدرِ متعدی- لږ تودول- تودول- ایله تاؤ وررسول-

ترمون:(ترٖ-م-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ترمول-

ترمونکے:(ترٖ-م-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ترمونکي- مؤنث ترمونکې- وګورئ ترمول-

ترمونه:(ترٖ-م-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترمول-

ترمېدل:(ترٖ-مې-دل)مصدرِ لازم- لږ ګرمېدل- لږ تودېدل- ایله تاؤ ور رسېدل-

ترمېدن:(ترٖ-مې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ترمېدل-

ترمېدنه:(ترٖ-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ترمېدل-

ترمېدونکے:(ترٖ-مې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ترمېدونکي- مؤنث ترمېدونکې- وګورئ ترمېدل-

ترمېدهٔ:(ترٖ-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ترمېدل-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

ترمې:(تر-مې)اسم- واحد- مذكر- لره كرمې-

ترن:(ت-ړن)حاصل مصدر- وګورئ ترل-

ترنګ(ت-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ ترل-

ترنګ:(ترنګ)اسم صوت- ترنګا- ټنګار- ټنګ- د ساز اواز-

ترنګ:(تر-نګ)اسم- واحد- مذكر- هغه غټ خوړند كانړے چې ختل پرې پېر ګران وي- جمع ترنګونه-

ترنګا:(ترنګ-ګا)اسم صوت- ټنګا- ټنګ- وګورئ ترنګ-

ترنګار:(ت-ړنګ-كار)اسم- واحد/جمع- مذكر- سواګه- ځكار- چې زرګران پرې زر ويلې كوي-

ترنګړ:(ترنګ-ګړ)ام- ترنګې- خولى كټ- د بوجې يا ټاټ نه جوړ هغه ځادر چې ځاروو له پكښې ګياه راوړے شي-

ترنګول:(ترنګ-ګ-ول)مصدر متعدي- ټنګول- غږول- (عام طور سره د تاروتو لرونكيو د موسيقي آلو سره راځي)-

ترنګون:(ترنګ-ګ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ترنګول-

ترنګونكے:(ترنګ-ګ-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر-جمع ترنګونكي- مؤنث ترنګونكې- وګورئ ترنګول-

ترنګونګ:(ترنګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ترنګول-

ترنګونه:(ترنګ-ګ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترنګول-

ترنګهار:(ترنګ-ګ-هار)اسم صوت- ترنګا- ټنګار- د ساز پرله پسې د ټنګ ټنګ اواز-

ترنه:(ت-ړه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ترل-

تړو:(ت-ړو)اسم صفت- مذكر- (۱)ترو- كېږې وږې او اوتې بوټې ويونكے- هغه څوک چې فضول لګيا وي- جمع تړوګان- (۲)اپلتې- اوتې بوتې- (اسم)-

تړوبے:(ت-ړو-بے)اسم- واحد- مذكر- بمبه- د أبو نلكه- جمع تړوبي- (افغانستان)-

تړوپ:(تړوپ)اسم صوت- شړوپ- كړوپ- ګړوپ- ترپ- په أبو كښې د څه څيز د غړځېدو اواز-

تړوكے:(ت-ړو-كے)اسم- واحد- مذكر- چارګ- د سپر ځلورمه حصه- جمع تړوكي-

تړومبې:(تړوم-بې)اسم- جمع- مؤنث- ترمې شوې شملې-

تړون:(ت-ړون)اسم- (۱)تړنه- غټه زركونه- (۲)قاعده- رسم- دود- دستور- (۳)قرارداد- (۴)رابطه- تعلق- بانده- (۵)بندېز- تړه- ناغه- (۶)اتحاد كونه- اتفاق كونه-

تړون سمون:(ت-ړون-س-مون)اسم- تړنه سمونه- برابرونه- سمبالونه- په ترتيب كونه- جوړ جاړ برابرونه-

تړونكے:(ت-ړون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع تړونكي- مؤنث تړونكې- وګورئ ترل-

تړونے:(ت-ړو-نے)اسم فاعل- (۱)جمع تړوني- مؤنث تړونې- وګورئ ترل- (۲)اسم- د ترلو آله- هغه شے چې د هغې په ذريعه څه ترل كېږي-

تره:(ت-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لار- لاره- (۲)سخته زمكه- (۳)اراده- مقصد- (۴)وعده- لوظ- (۵)د تېرې څوكې غنډې- (۶)لويه غټه كلكه تيره- (۷)دود- دستور- رواج- جمع ترې-

تړه:(ت-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دليل- حجت-

تړه:(ت-ړه)اسم- واحد- مؤنث- په چا پسې په غنډه راوتنه- د چا په ګډه ملګرتيا يا مخالفت كونه- قومي غړ- جمع تړې-

تړمار:(ت-ړ-مار)اسم- د تړتړې سرى پرله پسې خبرې-

تړياتوب:(تړ-يا-توب)اسم- طمع- لالچ- حرص- اسره- اميد- وعده-

تړيسكار:(ت-ړيس-كار)صفت- سټ وټ- اټ و پېټ- لګوترک-

تړيسكار:(ت-ړيس-كار)متعلق فعل- ژر ژر- په يو مخ- يو د پاسه بل-

تړيسكار:(ت-ړيس-كار)اسم- تړره- وچه منده- داو- دګړ-

تړيسكه:(ت-ړيس-كه)اسم- واحد- مؤنث- عذاب- اذيت- سختيه- كړاو- ناكرده- تكليف- مشكل- جمع تړيسكې-

تړيسمار:(ت-ړيس-مار)اسم- وګورئ تړسمار-

تړيكه:(تړي-كه)اسم- واحد- مؤنث- څريكه- بربېښ- درد- دړد- تكليف- (افغانستان)-

تړېدل:(تۀ-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)تړ تړ كول- فضول خبرې كول- (۲)په تړتړى ژبه خبرې كول-

تړېدلے:(تۀ-ړې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع تړېدلي- مؤنث تړېدلې- وګورئ تړېدل-

تړېدن:(تۀ-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تړېدل-

تړېدنګ:(تۀ-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تړېدل-

تړېدنه:(تۀ-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تړېدل-

تړېدونكے:(تۀ-ړې-دون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع تړېدونكي- مؤنث تړېدونكې- وګورئ تړېدل-

تړېدونے:(تۀ-ړې-دو-نے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع تړېدوني- مؤنث تړېدونې- وګورئ تړېدل-

تز:(تز)اسم- واحد- مذكر- تيز- باد- د كبيږې هوا- تيز-

تزاون:(ت-زا-ون)صفت- مذكر- تزن- تيزاون- تيزن- مؤنث تزاونه- جمع مؤنث تزاونې-

تزريق:(تز-ريق)اسم- (۱)پيچكارى- ستن لګونه- انجكشن لګونه- د بدن په څه حصه كښې يا رګ كښې د سرنج په ذريعه دارو داخلونه- (افغانستان)- (م- عربي)-

تزكيه:(تز-كي-يه)اسم- واحد- مؤنث- پاكوالے- پاكونه- (م- عربي)-

تزلزل:(ت-زل-زل)اسم- (۱)رپا- رپېدنه- ربړدېدنه- لړزېدنه- (۲)نازړۀ توب- (م- عربي)-

ي (ښې-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پيا-لې)، ۍ (تن-دې) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

تزن:(تـه-زن)صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)تیزاوړ- تړن- تزن- تېزن- (۲)نامرد- بې غېرته- مؤنث تزنه- جمع مؤنث تزنې-

تزندي:(ت-زن-دي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تېزندی- هغه پړے چې د مرۍ خپه کولو د پاره د چا مرۍ ته اچولے شي- (۲)پانسي- د مرۍ خفه کونه-

تزنول:(تـز-ن-ول)مصدر متعدي- رېړول- کړول- تنګول- اذیت ورکول- پاذابول-

تزنولے:(تـز-ن-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تزنولي- مؤنث تزنولې- وګورئ تزنول-

تزنون:(تز-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ تزنول-

تزنونکے:(تز-ن-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تزنونکي- مؤنث تزنونکې- وګورئ تزنول-

تزنونګ:(تز-ن-زنګ)حاصل مصدر- وګورئ تزنول-

تزنونه:(تز-ن-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ تزنول-

تزنېدل:(تز-نې-دل)مصدر لازم- کړېدل- رېړېدل- پاذابېدل- تنګېدل- اذیت ورکېدل- په عذابېدل-

تزنېدن:(تز-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تزنېدل-

تزنېدنګ:(تز-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تزنېدل-

تزنېدنه:(تز-نې-دہ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تزنېدل-

تزنېدونکے:(تز-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تزنېدونکي- مؤنث تزنېدونکې- وګورئ تزنېدل-

تزنېدونے:(تز-نې-دو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تزنېدوني- مؤنث تزنېدونې- وګورئ تزنېدل-

تزنېدۀ:(تز-نې-دۀ)حاصل مصدر از د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ تزنېدل-

تزویج:(تز-ویج)اسم- نکاح- واده- زاده کونه-

تزویر:(تز-ویر)اسم- مکر- فرېب- چل- چل ول- دوکه- تزویر- (م- عربي)-

تزوے:(ت-ز-وے)اسم- واحد/جمع- مذکر- شنې پاڼې لرونکے يو قسم زاښه- (افغانستان)-

تزيید:(تز-يید)اسم- مذکر- زيات والے- ډېروالے-

تزيين:(تز-يين)اسم- (۱)ښکلے کونه- سينګارونه- ډولی کونه- (۲)ښائست- ښکلا- (م- عربي)-

تزييني:(تز-يي-ني)صفت- د تزيين سره متعلق-

تزے:(ت-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)توزے- هغه غُنډه څرمن يا کپړه چې د خېمې د بانس د سورې د مضبوطيا د پاره کېنولے شي- (۲)د جوارو بمبل- (افغانستان)-

تړل:(ت-ړل)اسم- تيارے- آمادګي- چمتووالے- (افغانستان)-

تړل:(ت-ړل)مصدر- تورل- تراشل-

ترم:(تۀ-رم)اسم- واحد- مذکر- بدبوئ- وړم- سخا بوئ- جمع ترمونه- (افغانستان)-

ترم ژن:(تۀ-رم-ژن)صفت- مذکر- وړم ژن- وړم لرونکے-

ترے:(تۀ-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- تندي اخستے- د اُبو څښلو خواهش لرونکے- جمع ترې-

ترے والے:(تۀ-رے-وا-لے)اسم- تنده- د اُبو خواهش او ضرورت لرنه-

تس:(تس)صفت- مذکر- تش- خالي- ډېر- د ډک ضد-

تس:(تس)اسم صوت- د اوبو د پورته کولو، شړلو او ډډرولو اواز-

تسامح:(ت-سا-مُح)اسم- د اظهار غېر مُحتاط او ناقص انداز- ابهام- (م- عربي)-

تساند:(ت-سا-نُد)اسم- همکاري- يو بل سره مدد کونه- باهمي مرسته- باهمي تعاون-

تساوي:(ت-سا-وي)اسم- برابروالے- يو شان کېدنه- برابرېدنه-

تساهل:(ت-سا-هُل)اسم- سُستي- غفلت- (م- عربي)-

تسبک:(تس-بک)صفت- (۱)کلک- محکم- (۲)تيغ- سم- (افغانستان)-

تسبه:(تس-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تسپه- (۲)تسبيح- د لرګي، شيشې، مسالې وغېره نه جوړه هغه دانه چې مزي کښې نورو داسې دانو سره پېيلې شوې وي- جمع تسبې-

تسبيح:(تس-بيح)اسم- (۱)تسبې- د تسبو امېل- (۲)د خدائې پاکي بيانونه- ورد- وظيفه-

تسپه:(تس-په)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تسبه-

تسخير:(تس-خير)اسم- په قابو کښې راوستنه- تابع کونه- ګېرونه- (م- عربي)-

تسخين:(تس-خين)اسم- تودونه- ګرمونه- (م- عربي)-

تسريع:(تس-ريع)اسم- بېړه کونه- ملګه کونه- چټکوالے- ګړندوالے- تلوار کونه- سرعت نه کار اخستنه- جلدي کونه- (م- عربي)-

تسطيح:(تس-طيح)اسم- پلنونه- هوارونه- مُسطح کونه- (م- عربي)-

تسکره:(تس-ک-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تذکره- ذکر- بيان- ياداشت- قومي شناختي کارډ- (افغانستان)- (۲)سټرېچر- مسپتال کښې د بيمارانو د وړلو د پاره استعمالېدونکې بانګې- (افغانستان)- (م- عربي)-

تسکوره:(تس-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- سسکوره- د لرګي او د اُسپنې وړد مخ لرونکې هغه آله چې د زمکې کنستلو د پاره پکاريږي- کُداله- کوداله- کُدالې- کودالې- جمع تسکورې-

تسکين:(تس-کين)اسم- تسلي- سود- اطمينان- قرار- ارام- (م- عربي)-

تسل:(ت-سل)اسم- تسلي- داډ- اطمينان- (م- عربي)-

تسلسل:(ت-سل-سُل)اسم- سلسله- يو بل پسې کېدنه- پرله پسې کېدنه- (م- عربي)-

تسلط:(ت-سل-لُط)اسم- (۱)مسلط کېدنه- په قابو کښې راوستنه- (۲)برياله

کېدنه- پهٔ چا برے موندنه-

تسله:(تَ-سَ-لَه)اسم- واحد- مؤنث- تسل- تسلي- ډاډ- اطمينان- جمع زړهٔ- جمع تسلې- (م- عربی)-

تسلی:(تَ-سَل-لي)اسم- (۱)سود- ډاډ- ډاډگيرنه- اطمينان- تسله- (م- عربی)-

تسليم:(تَس-لِيم)اسم- (۱)مننه- قبلونه- غاړه اېښودنه- تابع کېدنه- سلامی کېدنه- (۲)سپارنه- حواله کونه- (م- عربی)-

تسليمول:(تَس-لي-مَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)منل- قبلول- غاړه اېښودل- سلامی کول- (۲)سپارل- حواله کول-

تسليمون:(تَس-لي-مَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ تسليمول-

تسليمونکے:(تَس-لي-مَ-وُوَن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تسليمونکی- مؤنث تسليمونکې- وګورئ تسليمول-

تسليمونه:(تَس-لي-مَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تسليمول-

تسليمی:(تَس-لي-مي)اسم- (۱)قبلونه- تابع کېدنه- (۲)ورسپارنه- ورحواله کونه-

تسليمېدل:(تَس-لي-مې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)قبلېدل- منلے کېدل- (۲)اېل کېدل- تابع کېدل- سلامی کېدل- حواله کېدل-

تسليمېدن:(تَس-لي-مې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ تسليمېدل-

تسليمېدنه:(تَس-لي-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تسليمېدل-

تسليمېدونکے:(تَس-لي-مې-دوَن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تسليمېدونکی- مؤنث تسليمېدونکې- وګورئ تسليمېدل-

تسليمېدهٔ:(تَس-لي-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تسليمېدل-

تسمه:(تَس-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ څرمنې وړه نرۍ ريښه- دَ څرمنې پټۍ- کمر بند- ملاتړونے- پټه- دَ څرمنې پټه- جمع تسمې-

تسمه غوږ:(تَس-مه-غوږ)اسم- هغه موم چې موچيان پرې تسمې غوړوی- ژوله- (افغانستان)-

تسميا:(تَس-مي-يا)اسم- نسميا کېدنه- تسمې تسمې کېدنه- تړو چاودنه- ذره ذره کېدنه- پرق چاودنه-

تسميه:(تَس-مي-يه)اسم- نوم اېښودنه- بسم الله وئيله- (م- عربی)-

تس نس:(تَس-نَس)اسمِ صفت- (۱)تسونس- تيت پرک- ورک پرک- کډوډ- خوارهٔ وارهٔ- (۲)ژر خلاص شوے- تمام شوے-

تسو:(تَ-سُو)اسم- (۱)يو نيم انچ- (۲)دَ زمکې نهٔ تقسيمېدونکې ډېره وړه برخه- (م- هندی تسو)-

تسول:(تهٔ-س-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)تشول- خالی کول- (۲)غرځول- (۳)ړزول- ړز کول-

تسون:(تهٔ-س-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ تسول-

تسونس:(تهٔ-سو-نَس)صفت- (۱)تس نس- خوارهٔ وارهٔ-

تسونکے:(تهٔ-سَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تسونکی- مؤنث تسونکې- وګورئ تسول-

تسونه:(تهٔ-سَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تسول-

تسويد:(تَس-وِيد)اسم- مسوده کونه- سمونه- ټيک کونه- (م- عربی)-

تسيا:(تَس-يا)صفت- (۱)بې هوشه- بې خوده- بې حسه- خالی والے- تشوالے- (افغانستان)-

تسېدل:(تهٔ-سې-دل)مصدرِ لازم- خالی کېدل- تشېدل- دَ ډکېدلو ضد-

تسېدن:(تهٔ-سې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ تسېدل-

تسېدنه:(تهٔ-سې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ تسېدل-

تسېدونکے:(تهٔ-سې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع تسېدونکی- مؤنث تسېدونکې- وګورئ تسېدل-

تش:(تَش)صفت/متعلق فعل- (۱)تس- خالی- ړد- کوګ- بې مغزه- (۲)فقط- ايله- يواځې- دومره- محض- صرف- (۳)فرض رکعتونو کښې دَ دوؤ زړومبيو رکعتونو نه پس ته رکعت يا رکعتونه- (۴)دَ منی انزال نه پس دَ آلت حالت-

تش:(تَش)اسم- واحد- مذکر- دَ جامو وينځلو دَ پاره لوئې ښانک- (افغانستان)-

تشاکل:(تَ-شا-کُل)اسم- يو شان کېدنه- (م- عربی)-

تش بازو:(تَش-با-زُو)اسم- دَ لامبو يو قسم- (افغانستان)-

تش بازی:(تَش-با-زي)اسم- واحد- مؤنث- بې لهٔ شنازه پهٔ سيند پورې وتنه- جمع تش بازې- (افغانستان)-

تش بانړے:(تَش-با-نړے)اسم- واحد- مذکر- بې پنډه- بې سامانه- بې وسلې- دَ مزل پهٔ وخت سامان وغېره نهٔ لرونکے- جمع تش بانړی-

تشبيب:(تَش-بِيب)اسم- دَ قصيدې تمهيد چې شاعران پکښې عام طور سره دَ عشقيه تاثر مضامين پېش کوی- (م- عربی)-

تشبيه:(تَش-بِيه/تَش-بِيح)اسم- مشابه کونه- دَ دوؤ څيزونو يو بل سره مشابهت- (م- عربی)-

تش پانړے:(تَش-پا-نړے)اسم- واحد- مذکر- تش بانړے- تش لاسے- دَ جنګ پهٔ وخت کښې بې وسلې سړے- جمع تش پانړی- مؤنث تش پانړې-

تش پهٔ توره:(تَش-پهٔ-تو-ره)متعلق فعل- نرناحقه- برناحقه- وچ پهٔ وچه-

تشت:(تَشت)اسم- ښانک- لګن- هغه ژور لوښے چې ډېرې اُبهٔ پکښې جمع کيږی او جامی پکښې وينځلے شی-

تشوالے:(تَش-وا-لے)اسم- تشتوب- خالی والے- تشتيا-

تشتوب:(تَش-توب)اسم- وګورئ تشوالے-

تش تور:(تَش-تور)صفت- (۱)بالکل خالی- بېخی تش- خالی لاس- (۲)ناکام- پاتې- تش- محروم- بې برخې-

تشتوړے:(تَش-تو-ړے)اسم- واحد- مذکر- څخکوړے- کشکوړے- څخکوړے- مښوکه- دَ کوزې، لوټې يا چائنک مښوکه، خُله يا څخکوړے- سُنت- سخنک-

ـټی" (ښي-رل) ـ ـی"(مې-ره-وَل)، ـی"(پيا-لې)، ـيے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

تشتیا:(تش-تیا)اسم- وګورئ تشوالے-

تشتینه:(تش-تي-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ګېډ وَرته غوښه- (۲)دَ ګېډ دَ ژامني غوښه-

تش خانه:(تش-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)آتش خانه- دَ اُور کوټه- (۲)انګیټي- چرۍ- بُخارۍ- جمع تش خانې-

تشخص:(تَ-شخ-خص)اسم- امتیاز- شخصیت- انفرادیت- (م- عربی)-

تشخیص:(تش-خیص)اسم- (۱)دَ ناروغۍ وجه معلومونه- (۲)ټاکل- تعینول- (۳)اندازه لګونه- بیلونه- فرق کونه- (م- عربی)-

تشخیصول:(تش-خی-ص-ول)مصدر متعدی- (۱)ټاکل- مقررول- تعین کول- (۲)دَ ناروغۍ معلومول- دَ ناروغتیا پېژندل- اندازه لګول- بیلول-

تشخیصي:(تش-خی-صي)اسم- دَ تشخیص سره متعلق- (م- عربی)-

تشخیصېدل:(تش-خی-صې-دل)مصدر لازم- (۱)دَ بیمارۍ وجه معلومېدل- (۲)ټاکلے کېدل- مقررېدل- ټاکلېدل- (۲)بېلېدل- پېژندلے کېدل- (م- عربی)-

تشدد:(تَ-شد-دُد)اسم- سختي- زیاتے- جبر- سخته رویه-

تشدید:(تش-دید)اسم- (۱)زور اچونه- انتشار پېدا کونه- (۲)دَ شد علامت (ّ) ورکونه-

تشریح:(تش-ریح)اسم- شرح کونه- بیانونه- وضاحت-

تشریحی:(تش-ری-حی)اسم- دَ تشریح سره متعلق-

تشریع:(تش-ریع)اسم- شریعت ورکونه- قانون ورکونه- لاره ښونه- پهٔ سمه لاره اچونه- (م- عربی)-

تشریعی:(تش-ری-عی)اسم- دَ تشریع سره متعلق-

تشریف:(تش-ریف)اسم- عزت ورکونه- شرف ورکونه- بزرګي ورکونه- لوئ والے- دروندوالے- (م- عربی)-

تشریفات:(تش-ری-فات)اسم- جمع- (۱)دَ تشریف جمع- (۲)تکلُف- ظاهر داری کونه- رسمي او ظاهري هرکلے یا خبرې- (۲)استقبالي اداره یا فعل- (افغانستان)-

تشریفاتي:(تش-ری-فا-تي)اسم- دَ تشریفات سره متعلق-

تشفی:(تَ-شف-فی)اسم- تسلی- سکون- دلجمعی- (م- عربی)-

تشکارل:(تش-کا-رل)مصدر متعدی- تشکارول- جنګ دَ پاره سپے پارول- ویشکه کول- توش کول- سپے ایش کول- کشکارل-

تشکارلے:(تش-کا-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تشکارلی- مؤنث تشکارلې- وګورئ تشکارل-

تشکارن:(تش-کا-رن)حاصل مصدر- وګورئ تشکارل-

تشکارنګ:(تش-کا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ تشکارل-

تشکارنه:(تش-کا-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تشکارل-

تشکارول:(تش-کا-ر-ول)مصدر متعدی- وګورئ تشکارل-

تشکارون:(تش-کا-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ تشکارل-

تشکارونکے:(تش-کا-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشکارونکی- مؤنث تشکارونکې- وګورئ تشکارل-

تشکارونکے:(تش-کا-ر-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشکارونکی- مؤنث تشکارونکې- وګورئ تشکارول-

تشکارونګ:(تش-کا-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تشکارل-

تشکارونه:(تش-کا-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تشکارل-

تشکر:(تَ-شَ-کُر/تَ-شَک-کُر)اسم- واحد- مذکر- شکریه- شُکر- مننه- مهرباني- (افغانستان)- (م- فارسی)-

تشکک:(تَ-شک-کُک)اسم- شک کونه- (م- عربی)-

تشکل:(تَ-شک-کُل)اسم- واحد- مذکر- (۱)بڼه پېدا کونه- مېنځ ته راتلنه- تشکیل کونه- (۲)بڼکلے کېدنه- جمع تشکلونه-

تشکیک:(تش-کیک)اسم- پهٔ شک کښې اچونه- شک- اندېښنه- شُبه- (م- عربی)-

تشکیل:(تش-کیل)اسم- جوړښت- تاسیس- جوړنه- (م- عربی)-

تشکیلول:(تش-کی-لُ-ول)مصدر متعدی- شکل ورکول- جوړول- تاسیسول- مېنځ ته راوړل- (م- عربی)-

تشکیلون:(تش-کی-لُ-ون)حاصل مصدر- وګورئ تشکیلول-

تشکیلونکے:(تش-کی-لُ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشکیلونکی- مؤنث تشکیلونکې- وګورئ تشکیلول-

تشکیلونه:(تش-کی-لُ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تشکیلول-

تشکیلېدل:(تش-کی-لې-دل)مصدر لازم- جوړېدل- اخری شکل ورکېدل- تاسیسېدل- (م- عربی)-

تشکیلېدن:(تش-کی-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تشکیلېدل-

تشکیلېدنه:(تش-کی-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تشکیلېدل-

تشکیلېدونکے:(تش-کی-لې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشکیلېدونکی- مؤنث تشکیلېدونکې- وګورئ تشکیلېدل-

تشکیلېدهٔ:(تش-کی-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ تشکیلېدل-

تش لاس:(تش-لاس)اسم صفت- (۱)تش لاسے- مفلس- خوار- غریب- بې پېسې- (۲)غیر مسلح- بې وسلې-

تش لاسے:(تش-لا-سے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کنګال- خوار- نېستمن- بې شتو- بې پېسو- (۲)بې وسلې- جمع تش لاسی- مؤنث تش لاسې-

تشلمه:(تش-لَ-مه)اسم- واحد- مؤنث- کچلمه- دشلمه- یوه شیریني چې چایو سره خوړلے شي-

تش مغزے:(تش-مَغ-زے)اسم صفت- واحد- مذکر- بې عقله- ناپوهه- بې فکره- جمع تش مغزی-

تشناب:(تش-ناب)اسم- غسل خانه- چارچوبی- چړچوبی- چمچوبی-

تشنج:(تَ-شَن-نُج)اسم- دَ وجود اعصاب بې حسه کېدنه- دَ لاسو پښو کږېدنه- ټټنس- (م- عربی)-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(ږو-بې-دهٔ)

تشنګ:(تَش-نګ)اسم- واحد- مذکر- تنده- تاؤ- جَل- (م- فارسی)-

تشنګ:(تَ-شَنګ)اسم- تشنګ- تشنګي- تنده- تږے والے- توشګ- جَل-

تشنګي:(تَش-نَ-ګي)اسم- وګورئ تشنګ- (م- فارسی)-

تشنه:(تَش-نه)صفت- تږے- (م- فارسی)-

تشوالے:(تَش-وا-لے)اسم- مذکر- تشتوب- خالي والے-

تشوکے:(تَهٔ-شو-کے)اسم- واحد- مذکر- خالي- تش- کوک- (افغانستان)-

تشول:(تَهٔ-ش-وَل)مصدر متعدی- خالي کول- ړېول- ګوګول- خلاصول- (انزال)-

تشون:(تَهٔ-ش-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تشول-

تشونکے:(تَهٔ-ش-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشونکي- مؤنث تشونکې- وګورئ تشول-

تشونګ:(تَهٔ-ش-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تشول-

تشونه:(تَهٔ-ش-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تشول-

تشوونے:(تَهٔ-ش-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشووني- مؤنث تشوونې- وګورئ تشول-

تشویش:(تَش-ویش)اسم- پریشانی- فکر- سوچ- سودا- اندېښنه- (م- فارسی)-

تشویق:(تَش-ویق)اسم- لمسونه- هڅونه- ترغیبونه- شوق پېدا کونه- (م- عربی)-

تشویقول:(تَش-وی-قَ-وَل)مصدر متعدی- هڅول- لمسول- پهٔ شوق راوستل- ترغیبول- مائله کول- اماده کول- (افغانستان)-

تَشه:(تَهٔ-شه)صفت- (۱)دَ تش مؤنث- خالي- ړنه- (۲)دَ زمکې دَ پاسه دَ هوا کُرّه- فضا-

تشهد:(تَ-ش-هُد/تَ-شه-هُد)اسم- کلمهٔ شهادت لُستنه یا وئیله- دوېم او څلورم رکعت کښې پهٔ ناستې کلمهٔ شهادت وئیله- (م- عربی)-

تشهیر:(تَش-هیر)اسم- (۱)شهرت ورکونه- مشهورونه- (۲)شرمونه- مسخره کونه- رسوا کونه- پهٔ غلط کار دَ خلقو پهٔ مېنځ کښې رسوا کونه- مخ تورونه او پهٔ خرهٔ سورونه- (م- عربی)-

تشېدل:(تَهٔ-شې-دل)مصدر لازم- (۱)خالي کېدل- ړېدل- ګوګېدل- (۲)انزال کېدل- (۲)دَ ګېډې خالي کېدل-

تشېدن:(تَهٔ-شې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تشېدل-

تشېدنګ:(تَهٔ-شې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تشېدل-

تشېدنه:(تَهٔ-شې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تشېدل-

تشېدونکے:(تَهٔ-شې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشېدونکي- مؤنث تشېدونکې- وګورئ تشېدل-

تشېدونے:(تَهٔ-شې-دو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تشېدوني- مؤنث تشېدونې- وګورئ تشېدل-

تَشے:(تَهٔ-شے)اسم- واحد- مذکر- دَ انسان او حېوان دَ پښتو نه لاندې او دَ ږوږې دَ پاسه خالي ځاے-

تښ:(تښ)اسم- دَ تښل مصدر نه اسم- تښتېدل-

تښتاوُنه:(تښ-تا-وهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- متیزه-

تښتکے:(تښ-تَ-کے)اسم- واحد- مذکر- کوزغاړے- ږنهوکے- کودے- مات کنډولے- دَ سپو یا چرګیو چرګانو دَ اُبو څښلو لوښے- (افغانستان)-

تښتن:(تښ-تن)اسم- دَ څښتن یو قرائت- بادار- مالک- آقا- خاوند-

تښتند:(تښ-تَند)اسم صفت- (۱)تېښتې ته تیار- تښتېدونکے- (۲)پهٔ قهر او غضب تېرېدونکے-

تښتول:(تښ-تَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)تښول- پهٔ منډه کول- خغلول- (۲)پهٔ زور بوتلل- اغوا کول- (۳)لرې کول- پړول- شکست ورکول-

تښتولے:(تښ-تَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تښتولي- مؤنث تښتولې- وګورئ تښتول-

تښتون:(تښ-تَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تښتول-

تښتونکے:(تښ-تَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تښتونکې- مؤنث تښتونکې- وګورئ تښتول-

تښتونګ:(تښ-تَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تښتول-

تښتونه:(تښ-تَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تښتول-

تښته:(تښ-ته)امر- کلمهٔ تحقیر- (۱)لهٔ "تښتېدل" څخه دَ امر صیغه- کلمه تحقیر-

تښتېدل:(تښ-تې-دَل)مصدر لازم- (۱)پهٔ منډه کېدل- خغلېدل- (۲)دَ ښځې حېل کور پرېښول او چا پسې تلل- (۲)پړېدل- دَ څهٔ خبرې نه پهٔ څنګ کېدل-

تښتېدلے:(تښ-تې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تښتېدلي- مؤنث تښتېدلې- وګورئ تښتېدل-

تښتېدن:(تښ-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تښتېدل-

تښتېدنګ:(تښ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تښتېدل-

تښتېدنه:(تښ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تښتېدل-

تښتېدونکے:(تښ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تښتېدونکي- مؤنث تښتېدونکې- وګورئ تښتېدل-

تښتېدونے:(تښ-تې-دو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تښتېدوني- مؤنث تښتېدونې- وګورئ تښتېدل-

تښتېدهٔ:(تښ-تې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ تښتېدل-

تښځ:(تَ-ښځ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترښځ-

تښل ۱:(تښل)مصدر- دَ "څښل" یو قرائت-

تښل ۲:(تَهٔ-ښل)مصدر- تښتېدل-

تښلے:(تښهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تښلي- مؤنث تښلې- وګورئ تښل ۱-

تښلے:(تَهٔ-ښهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تښلي- مؤنث تښلې-

ئ" (ځي-رل)، ي" (مې-ره-وَل)، ی" (پیا-لې)، ے" (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

وکورئ تبنل ۲-

تبنن:(تبنن)حاصل مصدر- وګورئ تبنل ۱-

تبنن:(تۀ-بنن)حاصل مصدر- وګورئ تبنل ۲-

تبننګ:(تبننګ)حاصل مصدر- وګورئ تبنل ۱-

تبننګ:(تۀ-بننګ)حاصل مصدر- وګورئ تبنل ۲-

تبننه:(تبنۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تبنل ۱-

تبننه:(تۀ-بنۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تبنل ۲-

تبنول:(تۀ-بن-وَل)مصدر متعدی- د تښتول یو قرأت- وګورئ تښتول-

تبنولے:(تۀ-بن-ر-ـے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تبنولی- مؤنث تبنولې- وګورئ تښتولے-

تبنون:(تۀ-بن-ون)حاصل مصدر- وګورئ تښتون-

تبنونکے:(تبنون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تبنونکی- مؤنث تبنونکې- وګورئ تبنل ۱-

تبنونکے:(تۀ-بنون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تبنونکی- مؤنث تبنونکې- وګورئ تبنل ۲-

تبنونکے:(تۀ-بن-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تبنونکی- مؤنث تبنونکې- وګورئ تښتونکے-

تبنونګ:(تۀ-بن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تښتونګ-

تبنونه:(تۀ-بن-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تښتونه-

تصادم:(تَ-صا-دُم)اسم- ډغره- ټکره- پۀ خپلو کښې جنګېدنه- کرچ- د دوو کسو جنګېدنه- (م- عربی)-

تصانیف:(تَ-صا-نیف)د تصنیف جمع- وګورئ تصنیف-

تصاویر:(تَ-صا-ویر)اسم- جمع- د تصویر جمع- وګورئ تصویر-

تصحیح:(تص-حیح)اسم- صحیح کونه- سمونه- اصلاح کونه- غلطی لرې کونه-

تصحیف:(تص-حیف)اسم- پۀ لیک لست کښې غلطی کونه- د څنو ټوریو پۀ ځای غلط ټوری لیکنه لکه د "ص" پۀ ځای "س" او د "س" پۀ ځای "ث" وغیره- (م- عربی)-

تصدق:(تَ-صد-دُق)اسم- صدقه- قربانی- خیرات- (م- عربی)-

تصدیع:(تص-دیع)اسم- تکلیف- درد سر- (م- عربی)-

تصدیق:(تص-دیق)اسم- (۱)د تکذیب ضد- رښتیا ګڼنه- تائیدونه- صداقت- تائید- (۲)شهادت- شاهدی- (م- عربی)-

تصدیقول:(تص-دی-ق-وَل)مصدر متعدی- (۱)رښتیا بلل- تائیدول- رښتیا ګڼل- (۲)منل- قبلول- (۳)شهادت کول-

تصرف:(تَ-صر-رُف)اسم- (۱)قبضه- اختیار- (۲)تبدیلی راوستنه- ګټې وړنه- (۳)خرڅ- صرف- (م- عربی)-

تصرفول:(تَ-صر-رُ-ف-وَل)مصدر متعدی- (۱)قبضه کول- کېرول- (۲)تبدیلی راوستل- ګټې وړل- (۳)خرڅ کول- صرف کول- (م- عربی)-

تصریح:(تص-ریح)اسم- شرح- تشریح- تفصیل- صفا صفا څرګندونه- ښکاره کونه- (م- عربی)-

تصریف:(تص-ریف)اسم- (۱)مصرفونه- خرڅ کونه- (۲)تبدیلی راوستنه- (۳)اړونه- ګرځونه- (۴)د صرف علم-

تصریفی:(تص-ری-فی)اسم- د تصریف سره متعلق- وګورئ تصریف-

تصغیر:(تص-غیر)اسم- وړوکوالے- کوتاهی- هغه اسم چې وړوکوالے ظاهروی-

تصفیه:(تص-فی-یه)اسم- (۱)صفائی- صفا کونه- چاڼونه- (۲)فېصله- (۳)بېباقی- (۴)ثالثی- (۵)د معاملاتو حل کونه- (م- عربی)-

تصنع:(تَ-صَن-نُع)اسم- (۱)جعل- تکلف- ظاهری نمائش- ځان ښونه- (۲)دوکه- فرېب- جعلسازی- (م- عربی)-

تصنعی:(تَ-صَن-نُ-عی)اسم- د تصنع سره متعلق- وګورئ تصنع-

تصنیف:(تص-نیف)اسم- طبع زاد کتاب لیکنه- ټولګې ټولګی کونه- جمع تصانیف تصنیفونه- (م- عربی)-

تصور:(تَ-صَو-وُر)اسم- (۱)خیال- (۲)سوچ- اندېښنه- (۳)ګومان- (م- عربی)-

تصوری:(تَ-صَو-وُ-ری)اسم- د تصور سره متعلق- وګورئ تصور-

تصوف:(تَ-صَو-وُف)اسم- لۀ نفسانی خواهشونو پاکېدنه- الٰهی اخلاق اختیارونه- (۲)هغه علم چې د هغې پۀ ذریعه د زړۀ تزکیه کیږی او د انسان او خدای تر منځه تعلق پېدا کیږی- (م- عربی)-

تصویب:(تص-ویب)اسم- سم او صحیح ګڼنه- د یو کار سموالی او ناسموالی حکم ورکونه- (م- عربی)-

تصویر:(تص-ویر)اسم- انځور- نقش- بُوت- صورت- عکس- څېره- خاکه- شکل- جمع تصویرونه/تصاویر- (م- عربی)-

تصویرول:(تص-وی-ر-وَل)مصدر متعدی- انځورول- مجسمول- شکل ورکول- کښل- (افغانستان)-

تضاد:(تَ-ضاد)اسم- (۱)خلاف- ورانوالے- ضد- (۲)د نظم او نثر هغه صنعت چې مخالف لفظونه پکښې یو ځای راشی- (م- عربی)-

تضحیک:(تض-حیک)اسم- پۀ چا پورې خندا کونه- توهین- ذلت- رسوائی- (م- عربی)-

تضرع:(تَ-ضر-رُع)اسم- زاری- زاری- عاجزی او عُذر کونه- (م- عربی)-

تضعیف:(تض-عیف)اسم- (۱)دوه چنده کونه- دوه- دونه کونه- (م)کمزورے کونه- یوې خبرې خاص طور سره حدیث ته د ضعف نسبت کونه- (م- عربی)-

تضلیل:(تض-لیل)اسم- ګمراهونه- پۀ چا د ګمراهۍ حکم کونه- (م- عربی)-

تضمین:(تض-مین)اسم- (۱)ضمانت کونه- ذمه وړنه- ذمه واری- (۲)د چا پۀ شعرونو باندې داسې بندونه جوړونه چې د هر بند وروستې او لۀ وروستې نه مخکښې مصرع دواړه د اصل شاعر او نورې مصرې د بندونو د جوړونکی شاعر وی- (م- عربی)-

تضمینول:(تض-می-ن-وَل)مصدر متعدی- (۱)ضمانت کول- ذمه وړل- پۀ ذمه

اخستل- (۲)دَ شعر تضمین لیکل- (افغانستان)- (م- عربی)-

تضمینېدل:(تَض-می-نې-دَل)مصدر لازم- تضمین کېدل- ذمه وهل کېدل- (افغانستان)- (م- عربی)-

تطابق:(تَ-طا-بُق)اسم- مطابقت- برابرېدنه- متفق کېدنه- دَ نثر نظم یو صنعت چې دَ شعر لفظونه پکښې داسې راشي چې یو بل سره مناسبت لري- (م- عربی)-

تطاول:(تَ-طا-وُل)اسم- ظلم- زیاتے- جور- (م- عربی)-

تطبیق:(تَط-بیق)اسم- مطابقت- موافقت- دوه یا زیات څیزونه سره برابرېدنه- (۲)عملي جامه وراغستنه- اجرا کونه-

تطبیقول:(تَط-بی-قَ-وَل)مصدر متعدی- سره برابرول- سره سمول- دَ دوو څیزونو سره برابرول- (افغانستان)-

تطبیقي:(تَط-بی-قي)صفت- دَ تطبیق سره متعلق-

تطبیقېدل:(تَط-بی-قې-دل)مصدر لازم- (۱)سره برابرېدل- سره سمېدل- (۲)عملي کېدل- اجرا کېدل- (افغانستان)-

تطهیر:(تَط-هیر)اسم- پاکونه- وینځنه- چینونه-

تعارض:(تَ-عا-رُض)اسم- تېرے کونه- زیاتے کونه- سره لګېدنه- سره نښتنه- برید کونه- (م- عربی)-

تعارف:(تَ-عا-رُف)اسم- واقفیت- پېژندګلو- اشنا کېدنه- یو بل سره پېژندنه- معرفي- (م- عربی)-

تعاقب:(تَ-عا-قُب)اسم- چا پسې اېډ کونه- شکست خوړلے لښکر یا فرد پهٔ منډه رااړونه- (م- عربی)-

تعالی:(تَه-عا-لی)اسم- دَ الله دَ نامې نه پس راتلونکې کلمه چې معنی ئې بلند، عالي مرتبه، لهٔ ټولو صفتونو زجت ده-

تعالی الله:(تَ-عا-لل-لا)کلمهٔ تعجب- دَ تعجب کلمه چې دَ تعریف یا حېرانتیا پهٔ موقع وئېلے شي- (م- عربی)-

تعامل:(تَ-عا-مُل)اسم- (۱)رسم و رواج- دود دستور- رواج- (۲)یو پهٔ بل اثر کونه-

تعاون:(تَ-عا-وُن)اسم- مرسته- ملګرتیا- مدد- کومک- (م- عربی)-

تعاوني:(تَ-عا-وُه-نی)اسم- دَ تعاون سره متعلق-

تعب:(تَ-عَب)اسم- تکلیف- رنج- مصیبت- (م- عربی)-

تعبیر:(تَع-بیر)اسم- (۱)عبارت کښې راوستنه- تفسیر- تاویل- (۲)دَ خوب معنی بیننه- (م- عربی)-

تعبیرول:(تَع-بی-ر-وَل)مصدر متعدی- (۱)بیانول- مطلب او مقصد بیانول- (۲)دَ خوب معنی کول- (افغانستان)- (۳)خبره پهٔ بل اړول ګڼل- دَ خبرې بله معنی کول-

تعبیرېدل:(تَع-بی-ري-دل)مصدر لازم- (۱)بیانېدل- مطلب او مقصد پهٔ څرګندو ټکو بیانېدل- (۲)دَ خوب معنی کېدل- (۳)خبره پهٔ بل اړول ګڼل- (۴)تفسیر کېدل- تاویل کېدل- (افغانستان)-

تعبیه:(تَع-بی-یه)اسم- تابیا- چاره- سمبالونه- برابرونه-

تعجب:(تَ-عَ-جُب/تَ-عَج-جُب)اسم- حېرانتیا- حېراني- حېرانګي- (م- عربی)-

تعجیل:(تَع-جیل)اسم- تلوار- بیړه- تادي- جلتي- جلدي- (م- عربی)-

تعداد:(تَع-داد)اسم- شمېر- شمار- ګنتري-

تعدی:(تَع-دی/تَ-عَد-دی)اسم- زور ظلم- جبر- جور- زیاتے- دَ حد نه تجاوز کونه- (م- عربی)-

تعدیل:(تَع-دیل)اسم- (۱)صحیح کونه- درستونه- (۲)څهٔ څیز دَ بل برابرونه- (م- عربی)-

تعدیلول:(تَع-دی-لَ-وَل)مصدر متعدی- سمول- اړول- اصلاح کول- جوړول- بدلول- (افغانستان)-

تعدیه:(تَع-دی-یه)اسم- دَ لازم فعل نه متعدی کونه- (م- عربی)-

تعذیب:(تَع-ذیب)اسم- خورونه- ربړونه- عذاب ورکونه- پاذابونه- کړونه- پهٔ عذابونه- (م- عربی)-

تعذیبول:(تَع-ذی-بَ-وَل)مصدر متعدی- ربړول- تنګول- خورول- کړول- پاذابول- تکلیفول- پهٔ عذابول- (افغانستان)-

تعذیبېدل:(تَع-ذی-بې-دل)مصدر لازم- ربړېدل- کړېدل- تنګېدل- خورېدل- پاذابېدل- پهٔ عذابېدل- (افغانستان)-

تعرض:(تَ-عَر-رُض)اسم- برید- غښه- حمله- یرغل- تېرے- تجاوز- ورختنه- (افغانستان)-

تعرضي:(تَ-عَ-رُ-ضي/تَ-عَر-رُ-ضي)اسم- دَ تعرض سره متعلق-

تعرف:(تَ-عَر-رُف)اسم- پېژندګلو- تعارف- معرفي- بلدتیا- بلدېدنه- (م- عربی)-

تعریب:(تَع-ریب)اسم- (۱)دَ غیر عربی ژبې توری عربی کونه- (۲)عربی کښې ترجمه کونه- (م- عربی)-

تعریف:(تَع-ریف)اسم- (۱)صفت- مدح- ستائنه- خوبي- (۲)شناخت- پېژندګلي- دَ یو څیز جامعه او مانعه معنی-

تعریفنامه:(تَع-ریف-نا-مه)اسم- هغه کتاب چې دَ سامان او وسلې دَ استعمال او دَ شغې نه دَ فائدې اخستو بیان پکښې لیکلے شوے وي- (افغانستان)- (م- عربی)-

تعریفول:(تَع-ري-فَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)پېژندګلي کول- صفت او ستائنه کول- (۲)تشریح کول- حقیقت بیانول- (افغانستان)- (م- عربی)-

تعزیت:(تَع-زی-یَت)اسم- غمخواري- خواخوږي- دَ مړي دَ پسماندګانو سره دَ همدردۍ اظهار-

تعزیر:(تَع-زیر)اسم- (۱)رټنه- غندنه- ملامتونه- تاوان- ګوشمالي- هغه سزا چې پهٔ قرآن شریف کښې ئې ذکر نهٔ وي او دَ قاضي پهٔ خوښه ورکولے کیږي- (۲)دبکه- دړکه- ام- عربی)-

تعزیرات:(تَع-زی-رات)اسم- (۱)دَ تعزیر جمع- (۲)دَ فوځ داری دَ قانون

کتاب- (م- عربی)-

تعزیرول:(تَع-زی-ر-وَل)مصدر متعدی- غندل- رټل- ملامتول- (افغانستان)-

تعزیری:(تَع-زی-ری)اسم- د تعزیر سره متعلق-

تعزیه:(تَع-زی-یه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غم رازی- تعذیت- (۲)دَ امام حسېن علیه السلام دَ قبر نقل چې دَ شیعه مذهب پېروکاران يُ دَ کاغذ او بانېس نه جوړوی او دَ یادګیرنې پهٔ توکه يُ محرّم کښې دَ جلوس پهٔ صورت ګرځوی-

تعزیه دار:(تَع-زی-یه-دار)اسم صفت- (۱)غمژن- (۲)تعزیه ابستونکے- (م- عربی)-

تعزیه داری:(تَع-زی-یه-دا-ری)اسم- د "تعزیه دار" کېدو حالت-

تعصب:(ته-عص-صب)اسم- (۱)مرسته- طرفداری- ننګه- څوړه- پهٔ څهٔ ټینګېدنه- (۲)کرکه- کینه- بغض-

تعطل:(تَ-عط-طل)اسم- اټالېدنه- ماتل کېدنه- وزګارېدنه- بېکاری- معطل کېدنه- (م- عربی)-

تعطیل:(تَع-طیل)اسم- (۱)رخصت- چټی- چوټی- (۲)وزګارتیا- بېکاری- (م- عربی)-

تعطیلول:(تَع-طی-ل-وَل)مصدر متعدی- (۱)بېکاره پاتې کېدل- (۲)رخصتول- (۲)کار ودرول- معطلول- اټالول- خنډول- (افغانستان)-

تعظیم:(تَع-ظیم)اسم- لوئ والے- ستروالے- ادب- عزت- دارمدار- خاطر- (۲)درنښت- احترام- (م- عربی)-

تعفن:(تَ-عَ-فن/تَ-عف-فن)اسم- (۱)تروم- ورم- سخا بوئی- (۲)بدبویه کېدنه- سخا- خوسکه- (م- عربی)-

تعقل:(تَ-عَ-قل/تَ-عق-قل)اسم- (۱)هوښیارتیا پېدا کونه- عقل لرنه- (۲)غور کونه- (۳)عقلیت پسندی (م- عربی)-

تعقیب:(تَع-قیب)اسم- (۱)چا پسې تلنه- څارنه- (۲)دَ نمانځهٔ نه پس دَ وظیفې دَ پاره ناسته- (۳)هغه دعاګانې چې دَ نمانځهٔ نه پس ونیلے شی- (۴)خنډونه- (م- عربی)-

تعقیبول:(تَع-قی-به-وَل)مصدر متعدی- (۱)تعقیب کول- څارل- څار کول- (۲)پېروی کول- پسې تلل- (افغانستان)- (م- عربی)-

تعقیبېدل:(تَع-قی-بې-دل)مصدر لازم- تعقیب کېدل- څارلے کېدل- (افغانستان)- (م- عربی)-

تعقید:(تَع-قید)اسم- (۱)غوټه ورکونه- (۲)پهٔ شعرونو کښې توری داسې پهٔ ثقالت مخکښې وروستو کونه چې د یو ځایُ تورے بل ځایُ ته ورسی او مطلب يُ واضح نهٔ وی- د مضمون او مفهوم داسې ادا کونه چې وضاحت يُ وهٔ نهٔ شی-

تعلق:(تَ-عل-لق/تَع-لق)اسم- (۱)تړون- تړاؤ- پېوستون- اړتړه- اړه- تعلقه- سریکار- واسطه- (۲)خپلولی- رشته- (۳)مناسبت- (۴)مینه- مېلان- رغبت- جمع تعلقات- (م- عربی)-

تعلقدار:(تَع-لق-دار/تَ-عل-لق-دار)صفت- مذکر- (۱)تعلق لرونکے- تعلق ساتونکے- وګورئ تعلق- (۲)زمیندار- لوئ زمیندار- دَ هندوستان زمیندار- (م- عربی)-

تعلقداری:(تَع-لق-دا-ری/تَ-عل-لق-دا-ری)اسم- (۱)دَ تعلقدار کېدو حالت- (۲)دَ تعلقدار جائېداد- هغه زمکه چې دَ یو تعلقدار پهٔ قبضه کښې وی-

تعلقه:(تَ-عل-ل-قه)اسم- (۱)ضلع- علاقه- (۲)قبضه- (۳)ملکیت- جائېداد- جاګیر- تعلقداری- (م- عربی)-

تعلقه:(تَ-عل-ل-قه)اسم- وګورئ تعلق-

تعلم:(تَ-عل-لم)اسم- زده کونه- دَ علم لټنه- (م- عربی)-

تعلی:(تَ-عل-لی/تَع-لی)اسم- (۱)لوئی- لاپې- بوزې- بډائی- (۲)دَ شاعری پهٔ اصطلاح کښې هغه وینا چې شاعر پکښې فخریه خپل لویُ والے وائی- (م- عربی)-

تعلیق:(تَع-لیق)اسم- نښلونه- یو متن سره دَ یو عالم سړی تشریحی نوټ- جمع تعلیقات- (م- عربی)-

تعلیم:(تَع-لیم)اسم- واحد- مذکر- زدکړه- علم حاصلونه- لیکنه لوستنه- جمع تعلیمونه- (م- عربی)-

تعلیم یافته:(تَع-لیم-یاف-ته)اسم- تعلیم موندونکے- (م- فارسی)-

تعلیمی:(تَع-لی-می)اسم- د تعلیم سره متعلق- وګورئ تعلیم-

تعمیر:(تَع-میر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ودانونه- ابادونه- (۲)ودانی- ابادی- کور- مېنه- جمع تعمیرونه/تعمیرات-

تعمیرات:(تَع-می-رات)اسم- عمارتونه- (م- عربی)-

تعمیراتی:(تَع-می-را-تی)اسم- دَ تعمیرات سره متعلق- وګورئ تعمیر-

تعمیری:(تَع-می-ری)اسم- دَ تعمیر سره متعلق- وګورئ تعمیر-

تعمیل:(تَع-میل)اسم- (۱)عمل کونه- کړهٔ کونه- حکم منّنه- (۲)فرمانبرداری- (م- عربی)-

تعمیم:(تَع-میم)اسم- (۱)رواجونه- (۲)مشهورونه- خورونه- عامونه- بابونه-

تعوذ:(تَ-عو-وذ)اسم- اعوذ بالله وئېنه- لهٔ شېطانه دَ خدایُ تعالٰی پناه غښتنه- (م- عربی)-

تعویذ:(تَع-ویذ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تاویذ- جمع تعویذونه- (م- عربی)-

تعویق:(تَع-ویق)اسم- شا ته غرځونه- اټالونه- (م- عربی)-

تعهد:(تَ-عَ-هد/تَ-عه-هد)اسم- (۱)ژبه- لوظ- وعده- قول- پهٔ غاړه اخستنه- پهٔ ذمه اخستنه- سینه ټپونه- (م- عربی)-

تعیش:(تَ-عی-یش)اسم- ښهٔ ژوندون- خوشحالی او عیش کښې ژوند تېرونه-

تعین:(تَ-عَ-ین/تَ-عی-ین)اسم- (۱)ټاکنه- مقررونه- ټاکلے کېدنه- غور کېدنه- منتخب کېدنه- مخصوص کېدنه- (۲)دَ تصوف پهٔ اصطلاح کښې پهٔ موجوداتو کښې فرق کونه- (م- عربی)-

تعین:(تَ-عین)اسم- تین- مقررونه- تینات- (م- عربی)-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(یو-بې-دهٔ)

تعینات:(تَ-عَیْ-یَ-نات)اسم- تقرری- ټاکنې- انتخابېدونې- غوره کېدنې- (م- عربی)-

تعیناتی:(تَ-عَیْ-یَ-نا-تی)اسم- تقرری- تقرر- دَ سرکاری ملازم په یو ځایْ مقررونه- تینات-

تعینول:(تَ-عَیْ-یَ-نَ-وَل)مصدر متعدی- مقررول- ټاکل- غوره کول- منتخب کول- (افغانستان)-

تغ:(تغ)اسم- واحد- مذکر- دَ اسپنې ټوپی- دَ اسپنې خول-

تغ:(تغ)اسم صوت- (۱)شخ- څخ- په هوا کښې دَ ټوپک دَ مردکو یا ګولیو دَ تېرېدو اواز- (۲)دَ غوښې دَ وریتولو اواز-

تغ:(تَغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نشان- علَم- بیرغ- جنده- توغ- (۲)دَ زیارت یا دَ مری دَ قبر جنده- جمع تغونه یا تغان- (م- فارسی)-

تغاده:(تَ-غا-ده)اسم- (۱)چا ته غصه کونه- قهر کونه- دپکه درکه کونه- (۲)ضد کونه- په خبره اړه کېدنه- جمع تغادې-

تغار:(تَ-غار)اسم- واحد- مذکر- لویْ ښانک- دَ خاورو لویْ لوښے- تغارے- جمع تغارونه-

تغارک:(تَ-غا-رَک)اسم صفت- تاغارک- دَ تندې بیمار- تنده غرے- دَ جل مریض-

تغاری:(تَ-غا-ری)صفت- وګورئ تغارے-

تغاری:(تَ-غا-ری)اسم- خاورین لوښے- تالے- مجمه-

تغارے:(تَ-غا-رے)اسم صفت- (۱)کېډو- کېډور- (۲)تاغارے- تغارک- تناری-

تغافل:(تَ-غا-فُل)اسم- غفلت- بې خبری- بې پروائی- (م- عربی)-

تغدرے:(تَغ-دَ-رے)اسم- څارے- یو مارغهٔ چې باز ئې په مینه خوری-

تغذیه:(تغ-ذی-یه)اسم- خوراک ورکونه-

تغرول:(تَغ-رِ-وَل)مصدر متعدی- تخنول-

تغړول:(تَغ-ړِ-وَل)مصدر متعدی- توغړول- په خاورو کښې راکښل- لغړول-

تغرولے:(تَغ-رِ-وَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تغرولی- مؤنث تغرولې- وګورئ تغرول-

تغړولے:(تَغ-ړِ-وَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تغړولی- مؤنث تغړولې- وګورئ تغړول-

تغرون:(تَغ-رِ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تغرول-

تغړون:(تَغ-ړِ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تغړول-

تغرونکے:(تَغ-رِ-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تغرونکی- مؤنث تغرونکې- وګورئ تغرول-

تغړونکے:(تَغ-ړِ-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تغړونکی- مؤنث تغړونکې- وګورئ تغړول-

تغرونګ:(تَغ-رِ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تغرول-

تغړونګ:(تَغ-ړِ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تغړول-

تغرونه:(تَغ-رِ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تغرول-

تغړونه:(تَغ-ړِ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تغړول-

تغزل:(تَ-غَز-زُل)اسم- (۱)غزل وئیله- عشقیه مضامین دَ اثر او تاثیر سره نظم کونه- (۲)غزلیت- دَ غزل خصوصیات- (م- عربی)-

تغلب:(تَ-غَل-لُب)اسم- غبن- خیانت- بې ځایه تصرف- (م- عربی)-

تغلیط:(تَغ-لیط)اسم- غلطونه- یو څیز باندې دَ غلط حکم لګونه-

تغلیظ:(تَغ-لیظ)اسم- دَ مائع څیزونو ټینګونه- (م- عربی)-

تغمه:(تَغ-مه)اسم- واحد- مؤنث- دغمه- دَ چابک یا لښتې دَ ګوزار نښه- جمع تغمې-

تغمه:(تَغ-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ تمغه بل قرات- تمغه- عزت- نمبرې- اعزاز- جمع تغمې-

تغند:(تَ-غَند)اسم- په بیړه او په تادی تېرېدونکے- (افغانستان)-

تغندی:(تَ-غَن-دی)اسم- واحد جمع- مؤنث- کاسه- کونډی- یو قسم لوښے-

تغندے:(تَ-غَن-دے)اسم- راکټ- (افغانستان)-

تغنول:(تَغ-نَ-وَل)مصدر متعدی- وریتول- تغول- سرهٔ کول- په غوړو کښې یو څیز سرهٔ کول یا کباب په اور کښې ورتول-

تغنولے:(تَغ-نَ-وَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تغنولی- مؤنث تغنولې- وګورئ تغنول-

تغنون:(تَغ-نَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تغنول-

تغنونکے:(تَغ-نَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تغنونکی- مؤنث تغنونکې- وګورئ تغنول-

تغنونګ:(تَغ-نَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تغنول-

تغنونه:(تَغ-نَ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تغنول-

تغو:(تَ-غو)اسم- واحد- مذکر- دَ اینځر ونه او میوه- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ اینځر- جمع تغوان توغان-

تغول:(تَ-غَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)په خرابو غوړیو کښې خراب سرهٔ کول- (۲)غرڅول- لږ تریل- توغول- ارتاوول- اړتاوول-

تغولے:(تَ-غَ-وَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تغولی- مؤنث تغولې- وګورئ تغول-

تغون:(تَ-غَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تغول-

تغوندے:(تَ-غَون-دے)اسم- واحد- مذکر- توغندے- راکټ- (افغانستان)- جمع تغوندی-

تغونکے:(تَ-غَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تغونکی- مؤنث تغونکې- وګورئ تغول-

تغونګ:(تَ-غَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تغول-

تغونه:(تَ-غَ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تغول-

تغوو:(تَ-غَ-وو)اسم- واحد- مذکر- توغ- نشان- بیرغ- جنده- علَم- جمع تغوونه-

تغیر:(تَ-غَیر)اسم- تبدیل- تغیر- بدلون- (م- عربی)-

تغیر:(تَ-غیرّ)اسم- واحد- مذکر- تاغیر- بدلون- اوښتنه- بدلېدنه- (عام طور سره د مخ د رنګ د پاره استعمالیږی)- (م- عربی)-

تغیر:(ت-غَی-یُر)اسم- اوښتنه- بدلېدنه- (م- عربی)-

تغیرول:(تَ-غَی-یَ-ر-وَل)مصدر متعدی- بدلول- اړول- دَ یو حال نه بل حال ته راوستل- (افغانستان)-

تغیرېدل:(تَ-غَی-یَ-رې-دَل)مصدر لازم- بدلېدل- اوړېدل- اوښتل- د یو حالت نه بل حالت ته اوړېدل-

تغېدل:(تُ-غې-دل)مصدر لازم- الوخول- الوتل- پرواز کول-

تغېدلے:(تُ-غې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تغېدلی- مؤنث تغېدلې- وګورئ تغېدل-

تغېدن:(تُ-غې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تغېدل-

تغېدنګ:(تُ-غې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تغېدل-

تغېدنه:(تُ-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تغېدل-

تغېدونکے:(تُ-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تغېدونکی- مؤنث تغېدونکې- وګورئ تغېدل-

تغېدهٔ:(تُ-غې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ تغېدل-

تف:(تُف)کلمهٔ نفرت- (۱)تو- تو لعنت- دَ لعنت او ملامت د اظهار کلمه- (۲)توکاڼې- (م- فارسی)-

تفاخر:(تَ-فا-خُر)اسم- فخر کونه- بډائي- ویاړ- (م- عربی)-

تفاریق:(تَ-فا-ریق)اسم- (۱)دَ تفریق جمع- تفرقې- بېلتونونه- جدایی- (۲)وقفې- (۲)قسطونه- (م- عربی)-

تفاسیر:(تَ-فا-سیرَ)اسم- (۱)دَ تفسیر جمع- تشریحات- وضاحتونه- (۲)اصطلاحاً دَ قرآن شریف شرحې- (م- عربی)-

تفاصیل:(تَ-فا-صیلَ)اسم- د تفصیل جمع- (۱)بیلونه- ټکړې ټکړې کونه- (۲)پوره بیانونه- تشریح بیانونه- (۲)فهرستونه- (۴)کیفیات- (م- عربی)-

تفاوت:(تَ-فا-وَت)اسم- (۱)فرق- توپیر- وت- فاصله- لرې والے- (۲)جدائی- امتیاز- (م- عربی)-

تفاهم:(تَ-فا-هُم)اسم- درک کونه- دَ یو بل پهٔ مقصد پوهېدنه-

تفتیش:(تَف-تیش)اسم- (۱)تفشیش- پلټنه- لټونه- شننه- کتنه- څېړنه- تلاش- (۲)تپوس- پښتنه- (۲)سُراغ- (م- عربی)-

تفچاق:(تَف-چاق)اسم- دَ ښهٔ نسل آس-

تفحص:(تَ-فَح-حُص)اسم- تپوس- پښتنه- شننه- لټون- (م- عربی)-

تفرّج:(تَ-فر-رُج)اسم- (۱)سېل- (۲)خوشحالی- راحت-

تفرع:(تَ-فر-رُع)اسم- خرانګه وتنه- ښاخ وتنه- مچرکے وهنه- (م- عربی)-

تفرقه:(تَف-ر-قه)اسم- بېلون- جُدائی- بې اتفاقی- درز- دَ دوؤ څیزونو پهٔ مېنځ کښې بیلوالے- (م- عربی)-

تفریح:(تَف-ریح)اسم- (۱)سېل- ساتېری- (۲)خوشحالی (۲)دَمه- (۴)رخصت- جمع تفریحونه/تفریحات-

تفریحاً:(تَف-ری-حَن)اسم- پهٔ ټوقو ټوقو کښې- دَ خندا پهٔ ړول- (م- عربی)-

تفریحی:(تَف-ری-حی)اسم- د تفریح سره متعلق- وګورئ تفریح-

تفریس:(تَف-ریس)اسم- دَ یوې ژبې توری فارسی کونه- (م- عربی)-

تفریط:(تَف-ریط)اسم- (۱)کمے- لږوالے- لږتیا- (۲)ګارونه- بې پروائی- غفلت- (۲)دَ مال ضائع کونه- (م- عربی)-

تفریق:(تَف-ریق)اسم- (۱)بیلونه- بېلتون- فرق- (۲)وت- تفاوت- (۲)اختلاف-

تفریقول:(تَف-ری-قَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)بیلول- جدا کول- (۲)لږول- کمول- نفی کول- لرې کول-

تفریقون:(تَف-ری-قَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تفریقول-

تفریقونکے:(تَف-ری-قَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تفریقونکی- مؤنث تفریقونکې- وګورئ تفریقول-

تفریقونګ:(تَف-ری-قَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تفریقول-

تفریقونه:(تَف-ری-قَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تفریقول-

تفسیر:(تَف-سیرَ)اسم- واحد- مذکر- جمع تفاسیر/تفسیرونه- وګورئ تفاسیر-

تفسیرول:(تَف-سی-ر-وَل)مصدر متعدی- (۱)تشریح کول- بیانول- څېړل- څرګندول- جوتول- ښکاره کول- واضح کول- د کلام معنٰی بیانول- (۲)دَ قرآن کریم دَ آیتونو شرح کول-

تفسیرېدل:(تَف-سی-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)تشریح کېدل- بیانېدل- څېړل کېدل- څرګندېدل- جوتېدل- ښکاره کېدل- واضح کېدل- دَ کلام معنٰی بیانېدل- (۲)دَ قرآن کریم شرح کېدل-

تفشیش:(تَف-شیش)اسم- وګورزئ تفتیش-

تفصیل:(تَف-صیلَ)اسم- واحد- مذکر- جمع تفاصیل- وګورئ تفاصیل- (م- عربی)-

تفصیلی:(تَف-صی-لی)اسم- د تفصیل سره متعلق- مُفصّل-

تفضیل:(تَف-ضیلَ)اسم- لوړ ګڼنه- یو څیز دَ بل نه ښهٔ ګڼنه- فضیلت ورکونه- لوړ والے- (م- عربی)-

تفقه:(ت-فَق-قه)اسم- (۱)پهٔ علم فقه پوهېدنه- (۲)عقلمند کېدنه- (م- عربی)-

تفکر:(تَ-فَ-کُر/تَ-فَک-کُر)اسم- فکر کونه- سوچ کونه- فکر- سوچ- اندېښنه- خیال- د فکرونو تر مېنځ دَ رابطو بنیاد- دَ کلمو پهٔ وسیله دَ ذهنی عمل اظهار- (م- عربی)-

تفنکچه:(ت-فَنګ-چه)اسم تصغیر- تومانچه- تمانچه- تماچه- دَ تفنګ اسم تصغیر-

تفنن:(تَ-فَ-نُن/تَ-فَن-نُن)اسم- (۱)یو کار یا هُنر پهٔ بیلو بیلو طریقو سَر ته رسونه- (۲)سېل- تفریح- عیاشی- مشغله-

تفنن طبع:(تَ-فَن-نُن-طَب-عَ)اسم- خوشحالی- خندا- د مشغلې پهٔ طور- (م- عربی)-

تفوق:(تَه-فَ-وُق/تَ-فو-وُق)اسم- (۱)برتری او لوړوالے غښتنه- لوړېدنه-

زبر (خَ-بهٔ-ره)، زورکے (شَل)، پېښ (نُو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکوڼ)، ه (ژ-ړه)، هٔ (پوهېدهٔ)

(۲)فوقیت موندنه- زیاتوالے- (م- عربی)-

تفویض:(تَف-وِیض)اسم- سپارنه- کار یا څهٔ څیز د چا تر غاړې کونه- (م- عربی)-

تفهم:(تَ-فَه-هُم)اسم- پوهېدنه- (م- عربی)-

تفهیم:(تَف-هِیم)اسم- پوهونه- فهمونه- (م- عربی)-

تقابل:(تَ-قا-بُل)اسم- مقابله- مخامخ کېدنه- ودرېدنه- برابر کېدنه- (م- عربی)-

تقاریر:(تَ-قا-رِیر)اسم- د تقریر جمع- (۱)بیانونه- وېناګانې- ذکرونه- (۲)بحثونه- مباحثې- (م- عربی)-

تقاضا:(تَ-قا-ضا)اسم- طلب- غښتنه- حاجت- ضرورت- خواهش- جمع تقاضې- (م- عربی)-

تقاعُد:(تَ-قا-عُد)اسم- لهٔ کاره اېستنه- لرې کېدنه- ناسته- (م- عربی)-

تقاوی:(تَ-قا-وِی)اسم- د حکومت لهٔ اړخه حقدارو خلقو ته د امداد پهٔ طور ورکړې شوې قرضې- امدادی رقم- (م- عربی)-

تقبیح:(تَق-بِیح)اسم- غندنه- بَد وئېنه- قبحه بیانونه-

تقبیحول:(تَق-بی-ح-وَل)مصدر متعدی- غندل- بد وئېل- (افغانستان)-

تقدس:(تَ-قَ-دُس/تَ-قَد-دُس)اسم- (۱)پاکېدنه- لهٔ عیبه پاکېدنه- (۲)پاکوالے- سپېڅلوالے- (۳)پاکی- پرهېزګاری-

تقدم:(تَ-قَ-دُم/تَ-قَد-دُم)اسم- وړاندې والے- مخکښې توب-

تقدیر:(تَق-دِیر)اسم- (۱)اندازه- مېچ کونه- (۲)نېټه- (۳)د خدایٔ تعالی حکم- (۴)برخه- نصیب- قسمت-

تقدیرنامه:(تَق-دیر-نا-مه)اسم- ستائن لیک- (افغانستان)-

تقدیرول:(تَق-دی-ر-وَل)مصدر متعدی- قدرول- ستائل- قدر کول- درونډ ګڼل- د عزت پهٔ سترګه چا ته کتل- تقدیر ورکول-

تقدیری:(تَق-دی-ری)اسم- (۱)قسمتی- د تقدیر سره متعلق- (۲)ناڅاپی- ناګهانه- بې پروګرامه-

تقدیس:(تَق-دِیس)اسم- پاکوالے- سپېڅلتیا- پاکی- پاکیزګی- مقدس والے- (م- عربی)-

تقدیم:(تَق-دِیم)اسم- (۱)پېل- وړاندې کونه- (۲)فوقیت-

تقدیمول:(تَق-دی-م-وَل)مصدر متعدی- وړاندې کول- مخکښې کول-

تقر:(تَ-قُر)اسم- د قره قل د پوستکي یو خاص ډول- (افغانستان)-

تقرب:(تَه-قَ-رُب/تَ-قَر-رُب)اسم- (۱)نژدېکت- نژدې والے- (۲)خپلولی- (م- عربی)-

تقرر:(تَ-قَ-رُر/تَ-قَر-رُر)اسم- مقررېدنه- ټاکلے کېدنه- ټاکنه- مقررونه- لګونه- مقررتیا- (م- عربی)-

تقرری:(تَ-قَ-رُ-ری/تَ-قَر-رُ-ری)اسم- د تقرر کېدو حالت- وګورئ تقرر-

تقریب:(تَق-رِیب)اسم- (۱)نژدېکت- نژدې والے- (۲)سبب- وجه- ذریعه- موقع- (۳)د څهٔ رسم یا وادهٔ ښادی پهٔ موقع غونډه- (م- عربی)-

تقریر:(تَق-رِیر)اسم- واحد- مذکر- جمع تقاریر- وګورئ تقاریر-

تقریری:(تَق-ری-ری)اسم- زبانی- پهٔ خلهٔ- د تحریری خلاف-

تقریظ:(تَق-رِیظ)اسم- (۱)ستائنه- مدح کونه- (۲)څرګندونه- نظریه- رایٔ- تبصره- د چا پهٔ لیک، مضمون یا پهٔ کتاب خپل نظر او رایٔ ښکاره کونه- (م- عربی)-

تقسیم:(تَق-سِیم)اسم- (۱)وېش- وېشنه- ونډ- برخه- (۲)صف بندی- (م- عربی)-

تقسیمول:(تَق-سی-م-وَل)مصدر متعدی- (۱)وېشل- برخې برخې کول- ونډې ونډې کول- (۲)پهٔ ریاضی کښې یو عدد پهٔ بل عدد باندې وېشل-

تقسیمون:(تَق-سی-م-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تقسیمول-

تقسیمونکے:(تَق-سی-م-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تقسیمونکی- مؤنث تقسیمونکې- وګورئ تقسیمول-

تقسیمونه:(تَق-سی-م-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تقسیمول-

تقسیمېدل:(تَق-سی-مې-دَل)مصدر لازم- (۱)تقسیم کېدل- وېشلے کېدل- برخې برخې کېدل- (۲)د حساب پهٔ قاعده کښې یو عدد پهٔ بل تقسیم کېدل-

تقسیمېدن:(تَق-سی-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تقسیمېدل-

تقسیمېدنه:(تَق-سی-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تقسیمېدل-

تقسیمېدونکے:(تَق-سی-مې-دَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تقسیمېدونکی- مؤنث تقسیمېدونکې- وګورئ تقسیمېدل-

تقسیمېدهٔ:(تَق-سی-مې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ تقسیمېدل-

تقصیر:(تَق-صِیر)اسم- واحد- مذکر- قصور- خطا- ګناه- کمے- جمع تقصیرونه- (م- عربی)-

تقصیروار:(تَق-صیر-وار)صفت- مذکر- قصوروار- ګناه ګار- خطا کونکے- (م- عربی)-

تقطیع:(تَق-طِیع)اسم- ټکړې ټکړې کونه- د علم عروض پهٔ اصطلاح کښې د شعر اجزا پهٔ داسې طریقه پهٔ وزن برابرونه چې د متحرک پهٔ مقابله کښې متحرک او د ساکن پهٔ مقابله کښې ساکن حرف راشی- (م- عربی)-

تقلید:(تَق-لِید)اسم- پېښې- نقل- پېروی- بې سوچه پهٔ چا پسې تلنه-

تقلیدی:(تَق-لی-دی)اسم- د تقلید سره متعلق- وګورئ تقلید-

تقلیل:(تَق-لِیل)اسم- لږونه- راښکته کونه- راکوزونه- (م- عربی)-

تقنین:(تَق-نِین)اسم- قانون لیکنه- قانون وضع کونه- قانون ټکنه- لار جوړونه- لار ایستنه-

تقنینی:(تَق-نی-نی)اسم- (۱)قانونی- د قانون- قانون سره تړلے- پهٔ قانون برابر- هغه کار چې پهٔ قانون سم وی او قانونی وجه لری-

تقوا:(تَق-وا)اسم- تقوی- پرهیزګاری- لهٔ خدایه وېرېدنه او لهٔ ګناهونو ځان ژغورنه- (م- عربی)-

تقوادار :(تَق-وا-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- پرهیزګار- پرهیزګاره- لهٔ خدایه ویرېدونکے- دَ شریعت او خدایٔ لهٔ خوا دَ منع شوو کارونو څخه ډډه او پرهېز کونکے-

تقوی:(تَق-وا)اسم- وګوره تقوا- (م- عربی)-

تقویت:(تَق-وی-یت)اسم- قوت ورکونه- قوی کونه- طاقت- قوت- زور- مدد- مرسته- ملاتړ- تسلی- ډاډ-

تقویم:(تَق-ویم)اسم- (۱)جنتري- کلیزه- (۲)بیه کونه- بیه ایښونه- قیمت معلومونه- (۳)سمونه- کوږوالے ایستنه- (۴)دَ کال وېشنه پهٔ میاشتو، هفتو او ورځو-

تقویه:(تَق-وی-یه)اسم- (۱)قوی کونه- قوت ورکونه- زده ورکونه- (۲)محکمونه- ټینګونه- کلکونه- استوارونه-

تقه:(تَ-قه)اسم- واحد- مذکر- غنډ سر لرونکے یو غشے-

تقی:(تَ-قی)صفت- پرهېزګار- تقوی دار-

تک:(تک)اسم- منډه ترړه- جدوجهد-

تک:(تک)اسم- مولخ- ملخ- مچخ- جمع تکونه-

تک:(تک)اسم- تمام- بالکل- بېخی- ټول- سکټ- دا تورے اکثر دَ څو رنګونو سره استعمالیږی-

تک:(تک)اسم- تبکه- تبکے- غلاف- نیام- (افغانستان)-

تک:(تُک)اسم- (۱)اندازه- جاج- اټکل- (۲)قافیه- فضول خبره- (۳)څوکه- دَ توري یا خنجر څوکه-

تکاپوے:(تَ-کا-پهٔ-وے)اسم- منډې ترړې- منډې رامنډې-

تکاثر:(تَ-کا-ثُر)اسم- (۱)ډېروالے- زیاتېدنه- ډېرېدنه- زیاتوالے- (۲)دَ مال دولت پهٔ زیاتی فخر کونه- (م- عربی)-

تکاثف:(تَ-کا-ثُف)اسم- ټینګېدنه- خټه کېدنه- غلیظېدنه-

تکاړه:(تَ-کا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- تکړه- اوار او مهین کاڼے- ښوے کاڼے-

تکامل:(تَ-کا-مُل)اسم- کاملېدنه- (م- عربی)-

تکاملی:(تَ-کا-مُ-لی)اسم- دَ تکامل سره متعلق- وګورئ تکامل-

تکبر:(تَ-کَ-بُر/تَ-کَب-بُر)اسم- کبر- غرور- لوئی- خان ښونه- خان لوړ ګڼنه-

تک بند:(تک-بند)صفت- مذکر- دوړه مار- بې وزنه او بې قافیې شعرونه ویونکے-

تک بندی:(تک-بَن-دی)اسم- دوړه ماری- ور غر برابرونه- چټی غږېدنه- بې وزنه بې قافیې او بې دریغه شعرونه وئیلنه-

تکبیر:(تک-بیر)اسم- الله اکبر وئیلنه- خدایٔ پاک پهٔ لویی سره یادونه-

تک توکینے:(تک-تو-کی-نے)اسم- واحد- مذکر- توردلے- رنجومکے- شینغوړے- سلېمانی مارغهٔ- یو قسم مارغهٔ- جمع تک توکینی-

تکټکانے:(تک-ټ-کا-نے)اسم- ګنده زن- ترکاڼ- یوه مرغی چې زړنې ټکوی-

تکټکے:(تک-ټ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ماشومانو یوه لوبه- (افغانستان)- (۲)هغه اله چې دَ ژرندې ناوې نه دانې راتویوی- ټکټکنے-

تکذیب:(تک-ذیب)اسم- دروغ ګڼنه- پهٔ بل باندې دَ دروغو تړنه- دَ دروغو الزام لګونه- (م- عربی)-

تکذیبول:(تک-ذی-بَ-وُل)مصدر متعدی- دروغ ګڼل- دروغژنول- دروغ بلل- دروغ کول- (افغانستان)-

تکذیبېدل:(تک-ذی-بې-دل)مصدر لازم- دروغژندېدل- دروغ ګڼل کېدل- دروغېدل-

تکرار:(تک-رار)اسم- واحد- مذکر- (۱)بیا بیا وینا- (۲)بحث- (۳)جګړه- (۴)دَ علم بدیع پهٔ اصطلاح کښې قافیه، مضمون یا مصرعه بیا بیا راوستنه-

تکرارول:(تک-را-رَ-وُل)مصدر متعدی- (۱)بیا بیا وئیل- دوباره وئیل- یو کار یا یوه خبره یو ځل یا څو څو ځله کول- (۲)خبرې اړول-

تکراری:(تک-را-ری)اسم صفت- (۱)تکرار کونکے- (۲)جنګیالے- جګړمار- (۳)تکرار سره متعلق-

تکرخور:(تَ-کر-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټکرې خوړونکے- (۲)در پهٔ در ګرځېدونکے-

تکریم:(تک-ریم)اسم- (۱)نمانځنه- درنونه- عزت ورکونه- ادب کونه- (۲)خاطر تواضع- (م- عربی)-

تکری:(تک-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ ټوکری بل قرات-

تکړښت:(تک-ړښت)اسم- تکړه والے- تکړه توب-

تکړه:(تک-ړه)اسم- تکاړه- اوار کاڼے- ښویه کاڼے- مهین کاڼے- (افغانستان)-

تکړه:(تک-ړه)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- مضبوط- پهلوان- تورزن- چُست- څَرب- (۲)بهادر- نر- (۳)قابل- ذهین- لائق-

تکړه توب:(تک-ړه-توب)اسم- (۱)تکړه توب- تکړه والے- تکړه والے- څربښت- څربوالے- تندرستی- (۲)بهادری- نرتوب- (۳)قابلیت- لیاقت-

تکړه تیار:(تک-ړه-تَ-یار)صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)روغ رمټ- چُست چابک- (۲)حاضر- تابعدار-

تکړه والے:(تک-ړه-وا-لے)اسم- وګورئ تکړه توب-

تکړی:(تَ-کَ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تکړے- ټوټه- پېوند- تېکړی- ټوک- دَ جامو پېوند- تکړی-

تکفیر:(تک-فیر)اسم- (۱)پټونه- (۲)کفاره ورکونه- (۳)کافرونه- کافر ګڼنه- کفر ته منسوبونه- (م- عربی)-

تکفین:(تک-فین)اسم- مړی ته کفن ورکونه- پهٔ کفن کونه- مړی ته کفن وراغستنه- (م- عربی)-

تکل:(تَ-کَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)اراده- کوشش- تلاش- لټون- (۲)دَ سفر نیت- دَ سفر اراده- (۳)یو ادبی صنف- جمع تکلونه-

تک لاسے:(تک-لا-سے)اسم صفت- واحد- مذکر- چُست چالاک- جمع تک لاسی- مؤنث تک لاسی- (افغانستان)-

تکلم:(تَ-کَل-لُم)اسم- (۱)ګړېدنه- ګنېدنه- خبرې کونه- (۲)وینا-

خبرې اترې- غږېدنه-

تکلیف:(تک-لیف)اسم- کړاؤ- زیار- خواری- ربړ- جنجال- (۲)مصیبت- غم- (۳)رنځ- بیماری- ناجوړتیا- ناروغتیا- (م- عربی)-

تکم:(تُ-کم)اسم- واحد- مذکر- تخم- نسل- نژاد-

تکمه:(تک-مه)اسم- واحد- مؤنث- تغمه- تنۍ- غُتۍ- بټن- جمع تکمې-

تکمیل:(تک-میل)اسم- پوره کونه- سر ته رسونه- ختمونه- مکملونه- پای ته رسونه- کمال ته رسونه- (م- عربی)-

تکمیلول:(تک-می-ل-ؤل)مصدر متعدی- سر ته رسول- مکملول- ختمول- پای ته رسول-

تکمیلېدل:(تک-می-لې-دل)مصدر لازم- پوره کېدل- سر ته رسېدل- مکملېدل- ختمېدل- پای ته رسېدل- (افغانستان)-

تکمیلېدنه:(تک-می-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تکمیلېدل-

تکمیلېدۀ:(تک-می-لې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ تکمیلېدل-

تکنیک:(تک-نیک)اسم- هُنر- فن- (افغانستان)- (م- انګریزی)-

تکنه توب:(تک-نه-توب)اسم- د "تکړه توب" بل قرأت-

تکنه والے:(تک-نه-وا-لے)اسم- د "تکړه والے" بل قرأت-

تک و پو:(تک-و-پو)اسم- تحقیقات- جدوجهد- (کول مصدر)-

تکون:(ت-کون)اسم- واحد- مذکر- مثلث- درې ګټیز- درې پریزه- جمع تکونونه- (م- هندی)-

تکوین:(تک-وین)اسم- پېدا کونه- پنځونه- د وجود ورکونه- (م- عربی)-

تکه:(ت-که)اسم- واحد- مؤنث- تیکه- بوټۍ- د غوښې ټوټه- د غوښې ټوکړه- بې هډوکی غوښه- جمع تکې-

تکه:(تک-که)اسم- واحد- مؤنث- تیږه- غټ کانړے- تږ- ګټ- جمع تکې-

تکه:(تۀ-که)صفت- (۱)هغه څېزلے چې خصې شوے نۀ وی- (۲)ګُلی ړنده- شوتې ړندی- ابس ړندی- د ماشومانو یوه لوبه- (اسم)-

تکه:(ت-که)اسم- تېکه- تېکے- غلاف- پوښ- نیام- د تورې یا چړې د اېښوو د ځرمنې کڅوړه-

تکه تیارکه:(تَ-که-تَیا-رۀ-که)اسم- تېزی- جلتی- بیړه- تادی- تُندی- چالاکی- چابکی-

تکیا:(تک-یا)اسم- واحد- مؤنث- تکیه- اسره- ډاډ-

تکیوان:(تَ-کی-وان)اسم- وچه- اچه- هغه لرګے چې د مېوې د ونې لاندې ودرولے شی- ارم-

تکیه:(تک-یه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فقیرخانه- (۲)د ملنګانو، چرسیانو او بنګیانو د ناستې ځای- (۳)باور- یقین- ډاډ- اعتماد- اسره- تکیا- (۴)بالښت- پښتی- مُتکه- اډه- ډډه- جمع تکیه ګانې-

تکیه کلام:(تک-یه-ک-لام)اسم- هغه توری چې په خبرو کښې بار بار وئیلے شی-

تکېدل:(تَ-کې-دل)مصدر لازم- ټوکېدل- شینکے لۀ زمکې را زرغونېدل- (افغانستان)-

تکېدلے:(تَ-کې-دۀ-لے)صفت- وګورئ تکېدل-

تکېدن:(تَ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تکېدل-

تکېدنګ:(ت-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تکېدل-

تکېدنه:(تَ-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تکېدل-

تکېدونکے:(تَ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تکېدونکی- مؤنث تکېدونکې- وګورئ تکېدل-

تکېدۀ:(تَ-کې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ تکېدل-

تکې:(تَ-کې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)غوږ نیونه- د چا خبره په زور او تکلیف اورېدنه- غګ کونه- (۲)جوړه- جُفت-

تک:(تک)اسم- رفتار- چلن- چلند- تلۀ- تلنه- حرکت- یون-

تکا:(ت-کا)اسم- توان- طاقت- حوصله- همت- (افغانستان)-

تکاپو:(تَ-کا-پو)اسم- جدوجهد- (م- فارسی)-

تک را تک:(تک-را-تک)اسم- امد و رفت- تلۀ راتلۀ- تلے راغلے- غم ښادی- تعلق- رشته-

تکړے:(ت-کۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- تیکړے- د زړې جامې ټوټه- جمع تکړی-

تکړے:(ت-کۀ-ړے)اسم- وګورئ تکړی- جمع تکړی-

تکلے:(تک-لے)اسم- واحد- مذکر- شینکے نۀ لرونکے ډاګ- مېره- بیابان- ډاګ- خټ- للمه- (افغانستان)-

تک و پو:(تک-و-پو)اسم- (۱)تکاپو- تک و دو- کوشش- جُستجو- (۲)تګ راتګ- خوئ خصلت- چال چلن- (م- فارسی)-

تکو پېره:(تَ-کو-پې-ره)اسم- تلنه راتلنه- جمع تکو پېرې-

تک و تاز:(تَ-کو-تاز)اسم- تګ- تلنه- (م- فارسی)-

تک و دو:(ت-کو-دؤ)اسم- منډه ترړه- هڅه- چل چلا- تګ و پو- کوشش-

تکیر:(ت-کیر)اسم- د اُبو د تقسیم بند- د اُبو د وېشلو بند- (افغانستان)-

تکۍ:(تَ-کۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)تبۍ- د کاڼی ازاره تخته- هغه پلنه تیږه چې ډوډۍ پرې پخولے شی- (۲)تبخے- (۳)تخته- توخه-

تکے تکے:(تۀ-کے-تۀ-کے)اسم صوت- تبغ تبغ- په مېښه د ختلو د پاره د سنډا د پارولو اواز-

تل:(تل)اسم- (۱)ژوروالے- (۲)تلے- (۳)تله- بېخ- (۴)د اُبو، تېلو یا بلې کومې مائع رشتلے- (۵)شکلوړې مېره- (۶)د زمکې لویه پلنه ټوکړه- (۷)ږخ- خوا- (۸)تلے- د کور انګڼ- کوربه-

تل:(تل)متعلق فعل- مدام- همېش- همېشه-

تل:(تل)اسم صفت- توی- ضائع- عبث-

تل:(تل)اسم- لوی تالے- تال-

"ی" (څی-رل)، "ي"(مې-ره-ؤل)، "ی"(ښیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

تل:(تل)اسم- شین فصل- سبزي-

تلاتوب:(تَ-لا-توب)اسم- (۱)ناقلاري- بې ارامي- (۲)هیجان- جوش-

تلازه:(تَ-لا-زه)اسم- واحد- مؤنث- ترازه- تلی- تیلم- قاش- چنده- تربشه- ترټي- د هندواڼې يا خربوزې ترازه- دره- جمع تلازې-

تلاړه:(تَ-لا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- چیرړه- چیرړي- لیتاره- ریښه- ریښکي- ریښانګه- د کپړې لویه او نرۍ ریښه- جمع تلاړې-

تلاش:(تَ-لاش)اسم- (۱)غښتنه- لټونه- هڅه- خواهش- طلب- (۲)بیړه- تلوار- تادي- تندي- (افغانستان)- (م- فارسي)-

تلاشي:(تَ-لا-شي)اسم- لټون- پلټون- پلټنه- تالاشي-

تلاښ:(تَ-لاښ)اسم- د "تلاش" بل قرأت-

تلاښي:(تَ-لا-ښي)اسم- د "تلاشي" بل قرأت-

تلاطم:(تَ-لا-طُم)اسم- څپه- غرځه- باداسکه- موج- جوش- جنګ جدل- (م- عربي)-

تلافي:(تَ-لا-في)اسم- بدله- صله- عوض- (م- عربي)-

تلاله:(تَ-لا-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دزکه-

تلانګه:(تَ-لانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- د اواز راتمبېدنه- انګې- ازانګه- جمع تلانګې-

تلاؤ:(تَ-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- تالاؤ- تالاب- د اوبو ډنډ- جمع تلاوونه- (م- فارسي)-

تلاوت:(تَ-لا-وت)اسم- لوستنه- ونینه- د قرآن مجيد لوستنه-

تلاوه:(تَ-لا-وه)اسم- (۱)ظلم- زیاتې- جور- جفا- زور زیاتے- (۲)تنبیه- بېدارونه- ویښونه- (۳)ګرمي- سخته ګرمي- جمع تلاوې-

تلاوے:(تَ-لا-وے)اسم- هغه لوښے چې پکښې د ګنې رَس جمع کیږي او بیا د هغې نه نور لوښو ته اچولے شي- جمع تلاوي-

تلاني:(تَ-لا-ني)اسم- واحد- مؤنث- ترلاني- توشک- تورشک- جمع تلاياني

تلب:(تَ-لب)اسم- تنخواه- مشاهره- (م- عربي طلب)-

تلبر:(تَل-بَر)اسم- (۱)لوئ ښانک- لکن- لوئ تال- (۲)پۀ ښانک کښې پرتې وریژې چې پۀ منځ کښې يې کوغالے زي-

تلبر:(تَل-بَر)اسم- واحد- مذکر- تربور- د تره زوئ-

تلبري:(تَل-بَ-ري)صفت- (۱)کپړو- ښبټو- ډېر خوراک کونکے- (۲)لنګري- باورچي-

تلبیس:(تَل-بیس)اسم- (۱)پټونه- د جامې اغستنه- (۲)چل- دزکه- ټګي- فریب- (۳)مشابهت-

تلپاچه:(تَل-پا-چه)اسم- واحد- مؤنث- تلپچه- ججه- چچه- بلې- جمع تلپاچې-

تلپچه:(تَل-پَ-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تلپاچه- جمع تلپچې-

تلپکه:(تَل-پَ-که)اسم- واحد- مؤنث- د کُلاه (کولې) د جوړولو د پاره استعمالېدونکې باتې-

تل تتله:(تَل-تَ-تۀ-له)متعلق فعل- وګورئ تل ترتله-

تل ترتله:(تَل-تر-تۀ-له)متعلق فعل- همېشه- شاهٔدام- ارمېشه- تل تتله-

تلتک:(تَل-تَک)اسم- واحد- مذکر- تولتک- بلستن- بړستن- نالی- نیالی- شیرک- کنځړ- (۲)کند- کوړے- جمع تلتکونه-

تلخ:(تَلخ)صفت- تریخ- اشاړ- د شیرین ضد- (م- فارسي)-

تلخان:(تَل-خان)اسم- جمع- مذکر- مُرمرې- د غنمو د دانو پۀ ګړه کښې جوړ شوی غُنډان-

تلخه:(تَل-خه)اسم صوت- د مچیو د شړلو اواز-

تلخه:(تَل-خه)صفت- د "تلخ" مؤنث- وګورئ تلخ-

تلخي:(تَل-خي)اسم- تریخوالے- تېزي-

تلخیص:(تَل-خیص)اسم- خلاصه کونه- لنډونه- خلاصه- لنډیز- (م- عربي)-

تلذذ:(تَ-لَذ-ذُذ)اسم- لذت اخستنه- خوند اخستنه- مزه اخستنه- (م- عربي)-

تلطف:(تَ-لَط-طُف)اسم- مهرباني- نرمي- لورنه- لورونه- (م- عربي)-

تلغاک:(تَل-غاک)اسم- (۱)الغوٓ- شور- زوږ- (۲)باد او باران- طوفان- هغه باران چې ورسره سخته سیلۍ وي-

تلغمه:(تَل-غَ-مه)اسم- واحد- مؤنث- جفا- جور- تېرے- خور- خیځرنه- تېرغمے- جمع تلغمې-

تلغمي:(تَل-غه-مي)اسم- تېرے- ظلم و ستم- تېرغمي- جور- جفا-

تلف:(تَ-لَف)صفت- (۱)برباد- لۀ منځه تلے- ضائع- (۲)ورک- مړ- هلاک- (م- عربي)-

تلفظ:(تَ-لَف-فُظ)اسم- (۱)خبري کونه- بیان کونه- (۲)لفظ ادا کونه- د وینا طرز- د یو توري پۀ درسته طریقه د ادا کولو طرز- (م- عربي)-

تلفول:(تَ-لَ-فَ-ول)مصدر متعدي- تلف کول- (۱)ضائع کول- بربادول- لۀ منځه وړل- لګول- خرڅ کول- (۲)ورکول- هلاکول- وژل- نشت کول- (افغانستان)-

تلفېدل:(تَ-لَ-فې-دل)مصدر لازم- تلف کېدل- (۱)بربادېدل- ضائع کېدل- لۀ منځه تل- (۲)مړۀ کېدل- نیشت کېدل- ورکېدل- هلاکېدل-

تلفېدنه:(تَ-لَ-فې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تلفېدل-

تلفېدۀ:(تَ-لَ-فې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ تلفېدل-

تلقین:(تَل-قین)اسم- وعظ کونه- نصیحت کونه- پند کونه- (م- عربي)-

تلکاري:(تَل-کا-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترکاري-

تل کوکي:(تَل-کو-کي)اسم- واحد- مؤنث- همېشه ګل- هغه ګل چې همېشه وي-

تلکه:(تَل-که)اسم- واحد- مؤنث- تلک- اړکي- د مرغانو نیولو پړکه- لټ- پړته- ګزکه- بټکي- کرکومه- کورکي- د مارغانو او نورو ځناورو د نیولو د پاره د لرګي يا اسپنې دام-

تلګی:(تۀ-لَ-ګي)اسم تصغیر- واحد جمع- مذکر- زړوکې تله- تله ګوټې-

تلکی:(تل-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لمڅے- نمد-

تلل ۱:(تَ-لَل)مصدر متعدی- جوکل- تول کول- وزن کول- په تله یا پیمانه جوکل-

تلل ۲:(تْلل)مصدر- (۱)لهٔ یوهٔ ځایه بل ځائ ته حرکت کول- (۲)مرکیدل- مړېدل-

تللے:(تَ-لهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تللی- مؤنث تللې- وګورئ تلل ۱-

تللے:(تْلهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تللی- مؤنث تللې- وګورئ تلل ۲-

تلمتی:(تل-م-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ترمتې- یو ښکاری تور مارغهٔ-

تلمذ:(تَ-لَم-مذ)اسم- شاګردی- (م- عربی)-

تلمیح:(تل-میح)اسم- پهٔ شعر کښې یوې تاریخی واقعې ته اشاره کونه- جمع تلمیحات- (م- عربی)-

تلمیذ:(تل-میذ)اسم- زده کرونے- زده کونکے- شاګرد- جمع تلامذه-

تلن:(تَ-لن)حاصل مصدر- وګورئ تلل ۱-

تلن:(تْلن)حاصل مصدر- وګورئ تلل ۲-

تلنتار:(تْلن-تار)اسم- شور- فریاد- غږ- تانتار-

تلنګ:(تَ-لنګ)حاصل مصدر- وګورئ تلل ۱-

تلنګ:(تْلنګ)حاصل مصدر- وګورئ تلل ۲-

تلنګے:(تَ-لنګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- دَ پیزار تلے- جمع تلنګی-

تلنه:(تَ-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تلل ۱-

تلنه:(تْلهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تلل ۲-

تلو:(تَ-لو)اسم- واحد- مذکر- تالاب- دَ تالاؤ بل قرات-

تلوار:(تل-وار)اسم- بیړه- تندی- جلتی- شتاب-

تلوارګرندے:(تل-وار-ګرن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- بیړندے- تلوار ګندے- تلواری- بیړه کونکے- جمع تلوارګرندی-

تلوارګندے:(تل-وار-ګن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- تلوارګرندے-

تلواری:(تل-وا-ری)اسم صفت- وګورئ تلوارګرندے-

تلواله:(تل-وا-له)اسم- ممېشګی- دَ ممېشه دَ پاره- (افغانستان)-

تلوالے:(تل-وا-لے)اسم- ممېشګی- (افغانستان)-

تلوترک:(تَ-لو-تَ-رک)اسم- بې تابی- بې ارمی- تلوسه- (افغانستان)-

تلور:(تَ-لور)اسم- واحد- مذکر- تلهور- ځاړے-

تلوسه:(تل-و-سه)اسم- واحد- مؤنث- مځه- لیوالتیا- دَ بې قراری شوق- ډېر زیات شوق- تلوترک- خواهش- ارزو- جمع تلوسې-

تلول ۱:(تَ-ل-ول)مصدر متعدی- (۱)تویول- خالی کول- چپه کول- (۲)غرخول- ګوذارول-

تلول ۲:(تَ-ل-ول)مصدر متعدی- (۱)پهٔ غورو یا تېلو کښې سرهٔ کول- (۲)غصه ورزستل-

تلول ۳:(تل-ول)اسم- (۱)تېزوالے- جلدی- (۲)وارخطائی- تروروالی-.تلوله-

تلوله:(تل-و-له)اسم- مؤنث- وارخطائی- پریشانی-

تلولے:(تَ-ل-وهٔ-لے)اسم صفت/مفعول- واحد- مذکر- چرتکے- تلون مزاج- وارخطا- تردد-

تلولے:(تَ-ل-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تلولی- مؤنث تلولې- وګورئ تلول ۱-

تلولے:(تَ-ل-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تلولی- مؤنث تلولې- وګورئ تلول ۲-

تلون:(تَ-لون)اسم- وزن- تول-

تلون:(تْلون)اسم- تګ- تلهٔ- رفتار- تلنه-

تلونکے:(تْلون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تلونکی- مؤنث تلونکې- وګورئ تلل-

تلونکے:(تَ-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تلونکی- مؤنث تلونکې- وګورئ تلول ۱-

تلونکے:(تَ-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تلونکی- مؤنث تلونکې- وګورئ تلول ۲-

تلونګ:(تَ-ل-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تلول ۱-

تلونګ:(تَ-ل-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تلول ۲-

تلونه:(تَ-ل-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تلول ۱-

تلونه:(تَ-ل-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تلول ۲-

تلونے:(تَ-لو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تلونی- مؤنث تلونې- وګورئ تلل ۱-

تلونے:(تْلو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تلونی- مؤنث تلونې- وګورئ تلل ۲-

تلویح:(تل-ویح)اسم- رونبونه- روښانه کونه- ځلونه- (م- عربی)-

تلویم:(تل-ویم)اسم- ملامتونه- ګرمونه- ملامت کونه-(م- عربی)-

تله ۱:(تهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ترازو- دَ تللو آله- ترکړې- (۲)اسمانی برجونو کښې دَ یو برج نوم- دَ شمسی کال اوومه میاشت (۲۳ ستمبر نه ۲۲ اکتوبر پورې) چې ایرانئې مترادف ئې مهر دے-

تله ۲:(تَ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تلے- دَ پښې لاندینی حصه چې زمکې سره لګی- (۲)دَ پیزار لاندینی حصه چې زمکې سره لګی-

تله ۳:(تَ-له)اسم- دونکاچه- چونتره- چبوتره-

تله ۴:(تَ-له)امر- تول کوه- زتله- دَ تلل نه امر-

تله ۵:(تهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ دربو ستورو چومبک- تلې-

تلهٔ:(تْلهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ تلل ۲

تلهٔ:(تَ-لهٔ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تله ۳-

تلهٔ راتلهٔ:(تلهٔ-را-تلهٔ)اسم- تګ راتګ- تعلقات-

تلیا:(تل-یا)صفت- تلولے- (کول- مصدر)-

تلیز:(تۀ-لیز)صفت- ازلی- دٔ همېشه دٔ پاره- (افغانستان)-

تلین:(تلین)اسم- تلینه- د مړی کال- دٔ مړی دٔ کال خېرات-

تلینه:(تلی-نه)اسم- وګورئ تلین-

تلې:(تۀ-لې)اسم- د درېو ستوریو چومبک- تله-

تلې پټ:(تۀ-لې-پټ)اسم- واحد- مذکر- دٔ تلې چاپېړے- دٔ تلې یو اړخ- (افغانستان)-

تلېدل ۱:(تَ-لې-دل)مصدر لازم- سرۀ کېدل- پۀ غوړو یا تېلو کښې سرۀ کېدل-

تلېدل ۲:(تَ-لې-دل)مصدر لازم- تونېدل- چپه کېدل-

تلېدلے:(تَ-لې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تلېدلی- مؤنث تلېدلې- وګورئ تلېدل ۱-

تلېدن:(تَ-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تلېدل ۱-

تلېدن:(تَ-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تلېدل ۲-

تلېدنګ:(تَ-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تلېدل ۱-

تلېدنګ:(تَ-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تلېدل ۲-

تلېدنه:(تَ-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تلېدل ۱-

تلېدنه:(تَ-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تلېدل ۲-

تلېدونکے:(تَ-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تلېدونکی- مؤنث تلېدونکې- وګورئ تلېدل ۱-

تلېدونکے:(تَ-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تلېدونکی- مؤنث تلېدونکې- وګورئ تلېدل ۲-

تلېدۀ:(تَ-لې-دۀ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ تلېدل ۱-

تلېدۀ:(تَ-لې-دۀ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ تلېدل ۲-

تلېسک:(تَ-لې-سک)اسم- دٔ انګورو زوړے، خوشه، غنشه، غنچه- (افغانستان)-

تلې ګپ:(تَ-لې-ګپ)اسم- دٔ خاصو ستورو دٔ مجموعې نومونه چې دٔ وخت اندازه ترې لګی او نجومیان ترې دٔ حالاتو اندازه لګوی-

تلېمن:(تَ-لې-من)اسم- بزغلے- بوزغلے- تلېمنګ- زوې غلے- زوغلے- کاڼ-

تلېمنګ:(تَ-لې-منګ)اسم- وګورئ تلېمن-

تلېوار:(تۀ-لې-وار)اسم- تادی- بېړه- دٔ تلوار بل قرات- وګورئ تلوار-

تلېوارکرندے:(تَ-لې-وار-ګرن-دے)صفت- دٔ تلوارکرندے بل قرات- وګورئ تلوارکرندے-

تلېوارکندے:(تَ-لې-وار-ګن-دے)اسم صفت- دٔ تلوارکندے بل قرات- وګورئ تلوارکندے-

تلی:(تَ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دٔ بوټو دٔ پاره جوړه شوه دروچه-

تلی:(ت-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دٔ غنمو یا أربشو ډنډری-

تلے:(تَ-لے)اسم- واحد- مذکر- تل- انګړ- غولے- مېدان- ډاګ- دٔ کور انګڼ- کورنه-

تلے:(تَ-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٔ پښې لاندینی برخه- (۲)دٔ پېزار لاندینی حصه- (۳)دٔ زمکې ښوکړه- (۴)دٔ لاس دٔ پنجې دننه حصه- زرغوے- (۵)کپه- چونډی- پۀ ورغوی کښې دٔ دارو مقدار- (۶)تل- بېخ-

تلے:(تۀ-لے)صفت/ماضی قریب- (۱)دٔ تللے بل قرات- لاړ- ولاړ- (۲)ضائع شوے-

تلے:(تَ-لے)اسم- دٔ کټ لنګه- (افغانستان)-

تلے:(تَ-لے)اسم- واحد- مذکر- د غوبل ځاې-

تلے تندے:(تَ-لے-تن-دے)اسم (مرکب)- پښه او سر- نوکه- جمع تلی تندی-

تلے راغلے:(تۀ-لے-را-غۀ-لے)اسم- (۱)راشه درشه- تګ راتګ- (۲)تعلق-

تم:(تم)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)اتهال- ایسار- ولاړ- تکیه وهلے- مؤنث تمه- جمع مؤنث تمې-

تم:(تَم)صفت- ختم- بس- تمام- (م- عربی)-

تم:(تَم)اسم- واحد- مذکر- تبر- تبرګے- جمع تمونه-

تماچه:(تَ-ما-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)توپانچه- تومانچه- تپنچه- تموچه- یوه وړه وسله- (۲)دٔ تیر او ستن تر منځه لرګے-

تمازت:(تَ-ما-زت)اسم- ګرمی- (م- عربی)-

تماس:(تَ-ماس)اسم- (۱)سره لګېدنه- بلوونه- ځرښنده- سره مښنه- (۲)رابطه- ارتباط- اړیکه- تعلق- رشته- (م- عربی)-

تماسک:(تَ-ما-سک)اسم- خان ژغورنه- خان ساتنه- خان ګوښه کونه- (م- عربی)-

تماشا:(تَ-ما-شا)اسم- واحد- مؤنث- تماشه- (۱)ننداره- سېل- نظاره- (۲)دٔ خندا او ټوقو ځیز- عجیبه ځیز-

تماشاچی:(تَ-ما-شا-چی)اسم صفت- تماشګیر- نندارچی- تماشه کونکے- کتونکے-

تماشائی:(تَ-ما-شا-ئی)اسم صفت- تماشګیر- نندارچی- تماشه کونکے-

تماش بین:(تَ-ماش-بین)اسم صفت- واحد/جمع- تماشګیر- نندارچی- ننداره کونکے- تماشه کتونکے- (م- فارسی)-

تماشګیر:(تَ-ماش-ګیر)اسم صفت- واحد/جمع- تماش بین-

تماشه:(تَ-ما-شه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تماشا- جمع تماشې-

تماغه:(تۀ-ما-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)توماغه- دٔ ځرمنې یو قسم ټوپی چې غوږونه پکښې پټ وی- (۲)دٔ ښکاری مارغانو دٔ سر ټوپی-

تماکو:(تَ-ما-کو)اسم- دٔ چیلم، سګرټ او نسوارو دٔ جوړولو دٔ پاره پکاربدونکے یو بوټے- نباتاتی نوم نکوټی یانا ټے بېکم NICOTIANA TABACUM-

تمام:(تَ-مام)صفت- (۱)پوره- مکمل- بشپړ- (۲)غنډ- ټول- ګرد- (۳)ختم-

خلاص- کامل- سر ته رسېدلے- تمامي- (م- عربي)-

تمام توب:(ت-مام-توب)اسم- وګورئ تمامښت-

تمامښت:(ت-ما-مښت)اسم- خلاصے- ختمېدنه- پوره کېدنه- تمام والے- تمام توب- تمامتيا- تمامي- تمامت-

تمامول:(ت-ما-م-ول)مصدر متعدي- (۱)خلاصول- بشپړول- پوره کول- سر ته رسول- ختمول- بس کول- (۲)بېخي خلاصول او خرڅ کول-

تمامون:(ت-ما-م-ون)حاصل مصدر- وګورئ تمامول-

تمامونکے:(ت-ما-م-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تمامونکي- مؤنث تمامونکې- وګورئ تمامول-

تمامونګ:(ت-ما-م-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تمامول-

تمامونه:(ت-ما-م-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تمامول-

تماموونے:(ت-ما-م-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تماموونی- مؤنث تماموونې- وګورئ تمامول-

تمامي:(ت-ما-مي)صفت- ټول- درست- پوره- مکمل- ټول ټال- واره- غټ- روغ- سالم- پوره په پوره- کلهم-

تمامېدل:(ت-ما-مې-دل)مصدر لازم- (۱)خلاصېدل- بشپړېدل- پوره کېدل- پاې ته رسېدل- سر ته رسېدل- ختمېدل- (۲)بېخي خرڅ کېدل-

تمامېدن:(ت-ما-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تمامېدل-

تمامېدنګ:(ت-ما-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تمامېدل-

تمامېدنه:(ت-ما-مې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تمامېدل-

تمامېدونکے:(ت-ما-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تمامېدونکي- مؤنث تمامېدونکې- وګورئ تمامېدل-

تمامېدۀ:(ت-ما-مې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ تمامېدل-

تمايل:(ته-ما-يل)اسم- علاقه ښکاره کونه- يو شي يا يو لوري ته مايل کېدل-

تمائي:(ت-ما-ئي)اسم- طمع لرونکے- سولند- (افغانستان)-

تمب:(تمب)اسم- د تمبو لګولو ځاې- (افغانستان)-

تمباکو:(تم-با-کو)اسم- وګورئ تماکو-

تمبان:(تم-بان)اسم- واحد- مذکر- پړتوګ- پرتوګ- پردوګ- (م- پنجابي- تنبي)-

تمبرے:(تم-ب-رے)اسم- د نانبايانو د پېړو جوړولو تخته- (افغانستان)- جمع تمبري-

تمبړۍ:(تم-ب-ړۍ)اسم تصغير- واحد جمع- مؤنث- تمبۍ- تمبکۍ- وړه تمبه-

تمبکه:(تم-ب-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د شاتو د مچيو کندو- د شاتو د مچيو سته- د شاتو د مچيو کور- ټومبکه- (۲)پولۍ- لړمه- تڼاکه- جمع تمبکې-

تمبکۍ:(تم-ب-کۍ)اسم تصغير- واحد جمع- مذکر- وګورئ تمبړۍ-

تمبل:(تم-بل)اسم- واحد- مذکر- دف- طبل- داريال- داريا-

تمبلباز:(تم-بل-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- تمبل وهونکے- تمبلي- جمع تمبلبازان- مؤنث تمبلبازه- جمع مؤنث تمبلبازې-

تمبل ګوټے:(تم-بل-ګو-ټے)اسم تصغير- واحد- مذکر- وړوکے تمبل-

تمبلي:(تم-ب-لي)صفت- واحد- مذکر- وګورئ تمبلباز-

تمبڼخے:(تم-بڼ-خے)اسم- واحد- مؤنث- تامپڼکے- د ګټې يا د لرګي نرۍ پلنه ټوکړه-

تمبۍ:(تم-ب-ۍ)اسم تصغير- واحد جمع- مؤنث- وګورئ تمبړۍ-

تمبو:(تم-بو)اسم- واحد- مذکر- (۱)خېمه- کېږدۍ- (۲)د مرغېو نيولو لومه- جمع تمبوګان/تمبوان-

تمبوخه:(تم-بو-خه)اسم- تربوخه- بدبويه وږمه- (افغانستان)-

تمبور:(تم-بور)اسم- د موسيقۍ يوه اله-

تمبورچي:(تم-بور-چي)صفت- تمبور غږونکے-

تمبوړے:(تم-بو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)صندوقچه- (۲)د ټيم وړوکې نلکه- جمع تمبوړي-

تمبوزک:(تم-بو-زک)اسم- (۱)سونټه- کټيزے- خولواښته- کچيز- کټ پوز- (۲)تربوزک- مول- مور- اربوزی- بمبوزی- بوزی- (۳)يو قسم ټوپک- غورين ټوپک- (افغانستان)-

تمبوزی:(تم-بو-زی)اسم- د پوزې ټيو- د پوزې مېنځنے کرپندے هډوکے-

تمبوزے:(تم-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تمبوزک-

تمبوزے:(تم-بو-زے)اسم- وګورئ تربوزک- (افغانستان)-

تمبوس:(تم-بوس)صفت- مذکر- لټ- بېکاره-

تمبوکۍ:(تم-بو-کۍ)اسم تصغير- واحد جمع- مؤنث- تمبکۍ- وړه تمبه- تمبړۍ- تمبۍ-

تمبوکے:(تم-بو-کے)اسم تصغير- وړه خېمه- وړه کېږدۍ-

تمبول:(تم-ب-ول)مصدر متعدي- د تصادم په نتيجه کښې بيرته ستنول- واپس ګرځول-

تمبولک:(تم-بو-لک)اسم- (۱)خانه بدوش- جنګټيان- هغه خلق چې په تمبوانو کښې وسي- چنګټيان- (۲)بمبولک- هر هغه شے چې غير ضروري طور باندې نيغ ودرولے شي-

تمبولے:(تم-ب-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تمبولي- مؤنث تمبولې- وګورئ تمبول-

تمبون:(تم-ب-ون)حاصل مصدر- وګورئ تمبول-

تمبونکے:(تم-ب-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تمبونکي- مؤنث تمبونکې- وګورئ تمبول-

تمبونګ:(تم-ب-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تمبول-

تمبونه:(تم-ب-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تمبول-

تمبه:(تم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د دروازې يو ور- (۲)د لرګي ستن/متې-

(۲)تومبه- ټولے- (۴- صفت)له خبري نهٔ اوښتونکے- سرزورے- پله- جمع تمبې-

تمبیزه:(تم-بی-زه)اسم- واحد- مؤنث- تمبیزے- تمبوزی- دَ پوزې دَ مېنځ کرپندے مهوکے- دَ پوزی ټېو- جمع تمبیزی-

تمبیزے:(تم-بی-زے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تمبیزه- جمع تمبیزی-

تمبېدل:(تم-بې-دل)مصدر لازم- (۱)دَ تصادم پهٔ نتیجه کښې ستنېدل- ځنګېدل- واپس کېدل- پهٔ شا تلل-

تمبېدلے:(تم-بې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تمبېدلی- مؤنث تمبېدلې- وګورئ تمبېدل-

تمبېدن:(تم-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تمبېدل-

تمبېدنګ:(تم-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تمبېدل-

تمبېدنه:(تم-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تمبېدل-

تمبېدونکے:(تم-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تمبېدونکی- مؤنث تمبېدونکې- وګورئ تمبېدل-

تمبېدهٔ:(تم-بې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ تمبېدل-

تمبېږے:(تم-بې-ږے)اسم- بشره- څېره-

تمتراق:(تم-تراق)صفت- طمطراق- شان شوکت- کروفر- (م- فارسی)-

تمتراخ:(تم-ت-راخ)اسم صفت- تمتراق- طمطراق- لوئی- شان و شوکت-

تمتراق:(تم-تراق)اسم صفت- وګورئ تمتراق-

تمتع:(ت-مت-تع)اسم- ګټه- نفع- نفع اخستنه- (م- عربی)-

تم تئ:(تم-تئ)اسم صفت- واحد- مذکر- سخی- (دَ حاتم طائی عامیانه تلفظ)-

تم تیلا:(تم-تی-لا)اسم- واحد- مذکر- تم تیل- تم تیل-

تمثال:(تم-ثال)اسم- (۱)صورت- تصویر- عکس- (۲)څېره- مجسمه- (۲)مثل- متل راوړنه- (م- عربی)-

تمثیل:(تم-ثیل)اسم- (۱)مثال- تشبیه- نظیر- مشابهت- دَ مثال پهٔ طور قصه بیانونه- (۲)ډرامه- (جدید)- (م- عربی)-

تمثیلول:(تم-ثی-ل-ول)مصدر متعدی- ښوول- نمائش ورکول- مثال راوړل-

تمثیلېدل:(تم-ثی-لې-دل)مصدر لازم- ښولے کېدل- مثال راوړلے کېدل- (افغانستان)-

تمجید:(تم-جید)اسم- بزرګی بیانونه- درنونه- نمانځنه- قدر کونه- لوئ ګڼنه- (م- عربی)-

تمخرے:(تم-خهٔ-رے)اسم- تنخرے- تنزرے-

تمچو:(ت-م-چو)اسم- واحد- مذکر- ووړ- تمبچو- تمبه- کاچو- هغه غټ لرګے چې دَ دروازې پهٔ شا دَ بندولو دَ پاره اچولے شی-

تمدن:(ت-مد-دن)اسم- (۱)دَ یو ځائ دَ وسېدلو طریقه- پهٔ ښار کښې وسېدنه- دَ معاشرت طریقه- (۲)یو علم چې پکښې دَ معاشرت اداب او طریقې ښودلے شی- (م- عربی)-

تمدید:(تم-دید)اسم- وړدونه- غزونه- وخت ورکونه- (م- عربی)-

تمدیدول:(تم-دی-د-ول)مصدر متعدی- وړدول- غزول- وخت ورکول-

تمر:(ت-مر)اسم- (۱)پخې کجورې- (م- عربی)- (۲)دَ سترګو یوه بیماری- (افغانستان)-

تمرد:(ت-مر-رد)اسم- نهٔ مننه- نهٔ قبلونه- سرکشی کونه- (م- عربی)-

تمرهندی:(ت-م-ر-هن-دی)اسم- مؤنث- املی- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ املی-

تمرین:(تم-رین)اسم- مشق- تکرار- تکرارونه- بیا بیا ونېنه- (م- عربی)-

تمساح:(تم-ساح)اسم- نهنګ- لوئ کب- ناکه- ننکی- کپیر-

تمسخر:(ت-مس-خر)اسم- مسخره کونه- ملنډې کونه- ملنډې- پیشاړه- پېچموزی- خندا- ټوقې- (م- عربی)-

تمسک:(ت-مس-سک)اسم- (۱)پنجه لګونه- ګرفت- دَ سند پهٔ طور مننه- (۲)هغه لوظ نامه چې پوروړے ئې دَ سند پهٔ توګه لیکی چې پکښې دَ روپیو دَ واپس کولو طریقه او میعاد لیک وی- (م- عربی)-

تمغه:(تم-غه)اسم- واحد- مؤنث- تغمه- پهٔ مقابله یا جنګ کښې دَ ښهٔ کار کردګی پهٔ مظاهره یادګاری نښه چې دَ انعام پهٔ طور ورکولے شی- جمع تمغې-

تمکه:(تم-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ پیو پهٔ شان سپینه ماده لرونکے یو زمرژن خنګلی بوټے- جمع تمکې-

تمکین:(تم-کین)اسم- (۱)درونوالے- درناوے- مرتبه- (۲)غاړه ایښونه- (۲)قوت ورکونه- (م- عربی)-

تملق:(ت-م-لق)اسم- خوشامنده- چاپلوسی- (م- عربی)-

تملیک:(تم-لیک)اسم- دَ ملکیت حق ورکونه- تملیک نامه- څوک دَ څهٔ څیز مالک یا خاوند کونه- (م- عربی)-

تملیک خط:(تم-لیک-خط)اسم- دَ ملکیت خط- هغه لیک چې پهٔ بنیاد ئې څوک دَ مال، جائېداد یا څهٔ څیز مالک کېدے شی- (افغانستان)-

تملیک نامه:(تم-لیک-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- تملیک- تملیک خط- هغه تحریر چې څوک دَ څهٔ جائېداد مالک جوړوی- جمع تملیک نامې-

تمن:(تهٔ-من)اسم- تمنهٔ- شخار- اشخار- اشقار- نرے- دَ اشخار دَ بوټی لهٔ پاڼو جوړه هغه چکی چې پهٔ ځنې علاقو کښې دَ صابون پهٔ ځائ پکارولے شی-

تمن:(ت-من)اسم- (۱)تومن- ټولے- جماعت- پله- عزیزولی- قبیله- (۲)رساله- پلټن- دَ سلو (۱۰۰) سورو یوه دسته-

تمنا:(ت-من-نا)اسم- واحد- مؤنث- امید- غښتنه- خواهش- ارزو- شوق- (م- عربی)-

تمندار:(ت-من-دار)اسم صفت- مذکر- لوئ خان- تمن لرونکے- رسالدار- دَ فوځی دستې افسر- دَ ټولی، جماعت یا خاندان مشر-

تمنهٔ:(تهٔ-مهٔ-نهٔ)اسم صفت- وګورئ تمن (۱)-

تمني:(تَ-مهٔ-ني)اسم- (۱)دٔ تمن سره متعلق- (۲)ټولی- قبیلې- شاملات-

تمنې:(تهٔ-مهٔ-نې)صفت- جمع- مؤنث- تمنې- تولمبې- ترمې- تودوکې-

تمنې:(تهٔ-منې)صفت- وګورئ تمنې-

تمنې:(تهٔ-مهٔ-نې)صفت- جمع- مؤنث- ترمې- لړې ګرمې- تمنی-

تموز:(تَ-موز)اسم- (۱)سخته ګرمی- د اماړ میاشت- (۲)دٔ رومی کېلنډر مطابق دٔ جولائی میاشت- (م- فارسی)-

تموس:(تَ-موس)اسم- (۱)خاربنت- بخار- (۲)زیاته ګرمی- تموز-

تموښ:(تَ-موښ)اسم- ګرمی- ورم-

تمول:(تَ-م-ول)مصدر متعدی- تَم کول- اتالول- خنډول- ایسارول- ودرول-

تمول:(تَ-مو-ول)اسم- شتمن توب- شتمنی- دولتمندی- مالداری- (م- عربی)-

تمون:(تَ-م-ون)حاصل مصدر- وګورئ تمول ۱-

تمونکے:(تَ-م-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تمونکی- مؤنث تمونکې- وګورئ تمول ۱-

تمونګ:(تَ-م-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تمول ۱-

تمونه:(تَ-م-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تمول ۱-

تمویل:(تَم-ویل)اسم- (۱)چاته مال ورکونه- (۲)مالیه- (م- عربی)-

تمه:(تَ-مه)اسم- واحد- مؤنث- طمع- لالچ- توقع- هیله- امید- اسره- (م- عربی طمع)-

تمهید:(تَم-هید)اسم- (۱)زیرونه- خپرونه- غوړونه- (۲)سریزه- شروع- پېل- عنوان- دیباچه- مقدمه- (م- عربی)-

تمهیدی:(تَم-هی-دی)صفت- د تمهید سره متعلق- وګورئ تمهید-

تمیز:(تَ-میز)اسم- (۱)بیلونه- جدا کونه- (۲)پېژندګلو- (۳)فرق- (۴)پوهه- عقل- شعور- (۵)ادب- (۶)طریقه- قاعده- (۷)چاچ-

تمیزدار:(تَ-میز-دار)اسم صفت- تمیز لرونکے- پوهه- هوښیار- لائق- مؤنث تمیزداره- جمع مؤنث تمیزدارې-

تمیزداری:(تَ-میز-دا-ری)اسم- دٔ تمیز لرلو حالت-

تمېدل:(تَ-مې-دل)مصدر لازم- تَم کېدل- اتالېدل- ودرېدل- ایسارېدل-

تمېدن:(تَ-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تمېدل-

تمېدنګ:(تَ-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تمېدل-

تمېدنه:(تَ-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تمېدل-

تمېدونکے:(تَ-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تمېدونکی- مؤنث تمېدونکې- وګورئ تمېدل-

تمېدهٔ:(تَ-مې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ تمېدل-

تن:(تَن)اسم- واحد- مذکر- (۱)بدن- وجود- ځان- صورت- جسم- جوثه- جُثه- کالبې- کالبې- (۲)کس- بنده- نفر- سر- سړے- (۳)چنده- (مصدر- اچول)-

تنا:(تَ-نا)اسم- واحد- مؤنث- تنا- دٔ وریخو غرا- تالنده- تنو- تندر- (م- عربی)-

تنا:(تَ-نا)اسم- تنها- یواځې- ګوښے- (دٔ تنها عامیانه تلفظ)- (م- فارسی تنها)-

تناب:(تَ-ناب)اسم- واحد- مذکر- طناب- تناؤ- بېکل- رسی- هغه دٔ اسپنې تار چې کپړې پرې نمر ته اچولے شی- (م- عربی)-

تنابوره:(تَ-نا-بو-ره)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ شکه یا خټه کښې جوړ کړے شوے سورے چې د پوکی پهٔ ذریعه پکښې اواز کیږی- (افغانستان)-

تنارهٔ:(تَ-نا-رهٔ)اسم- مذکر- تنور-

تنازع:(تَ-نا-زع)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بحث- شور- کړس- تنازعه- (۲)جنګ جګړه- فساد- خبرې اړونه- جمع تنازعې- (م- عربی)-

تنازعه:(تَ-نا-ز-عه)اسم- وګورئ تنازع-

تن اسان:(تَن-اَ-سان)صفت- تن اسانه- تن اسانے- ناراسته- کاهل- سست- لټ- ارام طلبه-

تن اسانه:(تَن-اَ-سا-نه)صفت- وګورئ تن اسان-

تن اسانی:(تَن-اَ-سا-ني)اسم- ناراستی- کاهلی- سستی- لټ توب-

تن اسانے:(تَن-اَ-سا-نے)صفت- وګورئ تن اسان-

تناسب:(تَ-نا-سب)اسم- دٔ دوؤ یا زیاتو اسمونو تر مېنځه نسبت- (م- عربی)-

تناسبی:(تَ-نا-سُ-بی)صفت- دٔ تناسب سره متعلق-

تناسخ:(تَ-نا-سُخ)اسم- شکل بدلېدنه- دٔ هندوانو دٔ عقیدې مطابق لهٔ مرګه پس پهٔ بل شکل کښې دوباره راپیدا کېدنه- (م- عربی)-

تناسخی:(تَ-نا-سُ-خي)صفت- دٔ تناسخ سره متعلق-

تناسل:(تَ-نا-سُل)اسم- نسل زیاتونه- پېدا کونه- اولاد پېدا کونه- (م- عربی)-

تناسلی:(تَ-نا-سُ-لي)صفت- دٔ تناسل سره متعلق-

تناظر:(تَ-نا-ظُر)اسم- یو بل ته کتنه- یو بل سره مخامخ کېدنه- تقابلی نظر-

تنافر:(تَ-نا-فُر)اسم- (۱)تنفر- کرکه- نفرت- (۲)دٔ شاعری پهٔ اصطلاح کښې دٔ یو حرف داسې پهٔ تکرار راتګ چې دٔ کلام خوند خراب کړی- (م- عربی)-

تناقص:(تَ-نا-قُص)اسم- نقص- زرو ورو کمېدنه- زیانونه- نقصانونه- (م- عربی)-

تناقض:(تَ-نا-قُض)اسم- تضاد- اختلاف- مخالفت- سره مخالف کېدنه- (م- عربی)-

تناؤ:(تَ-ناؤ)اسم- واحد- مذکر- تناب- رسی- وړد پړے- بدریشه- کېږ- (۲)دٔ زمکې تلے- (۳)دٔ کشتی د راکښلو دٔ اسپنې تار-

ئ (ځی-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دیے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

تناوب:(ت-نا-وب)اسم- وار ایښودنه- په وار-

تناوکین:(ت-ناو-کین)اسم- جولاګے- جولا- عنکبوت- غڼه- غڼے-

تناول:(ت-نا-ول)اسم- خوړنه- خوراک څښاک کونه-

تناوې:(ت-نا-وې)اسم- واحد- مذکر- د خیمې یا کېږدۍ رسۍ- تناؤ- ماندره- مرانده-

تنبل:(تم-بل)اسم- تمبل-

تنبل:(تم-بل)صفت- سست- لټ- کاهل- بیکاره-

تنبل کوټے:(تم-بل-کو-ټے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- تمبلکے- وړوکے تمبل- جمع تمبلکوټي-

تنبل مار:(تم-بل-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- تمبل مار- تمبلچي- چمبه مار- تمبل یا چمبه غړونکے-

تنبلي:(تم-به-لي)اسم- سستي- ناراستي- لټ توب-

تنبو:(تم-بو)اسم- وګورئ تمبو-

تنبور:(تم-بور)اسم- وګورئ تمبور-

تنبورچي:(تم-بور-چي)صفت- وګورئ تمبورچي

تنبورک:(تم-بو-رک)اسم- تمبل- طبل-

تنبوزے:(تم-بو-زے)اسم- تمبوزے-

تنبول:(تن-بول)اسم- پان- پاڼ-

تنبه:(تن-به)اسم- ګروه- ټولے- د دښمن مقابلې ته په خاص انداز کښې مخامخ کېدنه- د جنګ خاص انداز-

تنبه:(تم-به)اسم- واحد- مؤنث- تمبه- وړ- دروازه- د دروازې یوه برخه- جمع تمبې-

تنبیه:(تم-بیه)اسم- (۱)ملامته- ملامتیا- رټنه- (۲)خبردارے- ویښونه- پوهونه- نصیحت-

تن پرور:(تن-پر-ور)اسم- په خپل خان مین- خپل تن ساتونکے-

تنترے:(تن-ت-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- ترترے- هغه څوک چې ژبه ئې نښلي-

تنتنا:(تن-ت-نا)اسم- شان شوکت- رعب- دبدبه- آوازه-

تن تنها:(تن-تن-ها)اسم- یواځې- کوښے-

تنتنی:(تن-ت-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د کوترې په شان یو آبي مارغه چې وړدې پښې لري-

تنتوبه:(تن-تو-به)اسم- واحد- مؤنث- تندوبه زمکه- ازی-

تنخرے:(تن-خه-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تمخرے- جمع تنخری سائنسي نوم فرانکولینس پانډی سیریانس (FRANCOLINUS-PONDICERIANUS) -

تنخچي:(تن-خه-چي)اسم- د بوټي نری نری نازکې پاڼې او تاروته-

تنخواه:(تن-خا)اسم- واحد- مؤنث- د میاشتې عوضانه چې سرکاری ملازم یا نوکر ته ورکولے شي-

تنخواه دار:(تن-خا-دار)اسم- ملازم- نوکر- تنخواه اخستونکے-

تند:(تند)اسم- واحد- مذکر- (۱)تنده- (۲)سوکړه- (۳)تېز ارمان- هڅه- هیله-

تند:(تند)صفت- تاند- تازه- شین- سمسور- تنکے- نازک-

تند:(تند)اسم صفت- مذکر- (۱)توند- ګړندے- چابک- چټک- تېز- چُست- (۲)غصه ناک-

تندار:(تن-دار)اسم- واحد- مؤنث- تنداره- چاچی- تینداره- تندیار- د تره ښځه-

تنداره:(تن-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تندار- جمع تندارې-

تندخوی:(تند-خوی)اسم صفت- مذکر- خشکي- تېز خوئ لرونکے-

تندخویه:(تند-خو-یه)اسم صفت- مذکر- وګورئ تندخوئ-

تندر:(تن-در)اسم- واحد- مذکر- (۱)تنا- تنها- تالنده- اسماني بجلي- (۲)د نمر یا سپوږمۍ رڼا کمېدنه-

تندرست:(تن-درست)صفت- صحت مند- روغ جوړ- تکړه- روغ رمټ-

تندرست والے:(تن-درست-وا-لے)اسم- صحتمندي- روغ والے- جوړوالے- تکړه والے-

تندرستي:(تن-درس-تي)اسم- صحت- روغوالے- سلامتیا- روغتیا- جوړوالے-

تندرکے:(تند-ر-کے)اسم- واحد- مذکر- نیم سېرے- د نیم سر درد- جمع تندرکي-

تندرکے:(تن-در-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د غوږ او تندې تر مېنځه ځاې- د غوږ مرکنډی- (۲)لوېرنده- (۳)ټیک- رونګه- (۴)اجلخے- ستر پېژونکے-

تندره:(تن-دره)اسم- د نمر یا سپوږمۍ تندر نیونه- اسماني بلا- آفت-

تندره:(تن-ده-ره)اسم- واحد- مؤنث- ابشار- خړوبے-

تندرے:(تن-ده-رے)اسم- د ونې نوے پوټکے چې کال په کال د زوړ پوټکي ځاې نیسي- (افغانستان)-

تند زبان:(تند-ز-بان)اسم صفت- ژر ژر خبرې کونکے- مؤنث تند ژبانه- جمع مؤنث تند زباني-

تندغرے:(تن-ده-غه-رے)صفت- تندې وهلے- تږے- جمع تندغری-

تندک:(تن-دک)اسم- واحد- مذکر- تینډک- بډری- ټکره- جمع تندکونه-

تندک:(تن-دک)صفت- تند خویه- تېز مزاج- خشکي-

تندل:(تن-دل)مصدر- تنډل- جوړول- رغول- روغول- ترمیمول- مرمت کول- (افغانستان)-

تندلے:(تن-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تندلي- مؤنث تندلې- وګورئ تندل-

تند مزاج:(تند-م-زاج)اسم صفت- مذکر- تند خویه- تېز- قهرژن- غصیله- تریخ-

تندن:(تن-دن)حاصل مصدر- وګورئ تندل-

تندنګ:(تن-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تندل-

تندنه:(تَن-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تندل-

تندوالے:(تَند-وا-لے)اسم- (۱)تېزي- چابکي- (۲)غصه- قهر- سوخت والے-

تندوبه:(تَن-دو-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ اَبو داره- فواره- جمع تندوبې-

تنډوبې:(تَن-دو-بې)اسم صفت- واحد جمع- مؤنث- هېرې اَبهٔ لرونکې- بِنهٔ اَبهٔ شوې- اَروب خروب-

تندور:(تَن-دور)اسم- واحد- مذکر- تنور-

تندور:(تَن-دور)اسم- واحد- مؤنث- تنديار- دَ ترهٔ بِنځه-

تندوره:(تَن-دو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ښادر- داره- شندوره- (۲)صندوقچه- ابشار- غرومبے- بغرې- وهلندے- خارخوړې- کرخنے-

تندوړے:(تَن-دو-ړے)اسم- واحد- مذکر- تندوړے- دَ پوزې مېوکے- جمع تندوړي-

تندوړے:(تَن-دو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ ونې هغه ځانګه چې نوې تېغې ئې وهلې وي-

تندوړے:(تَن-دو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ پوزې دَ سپېرمو تر مېنځه غوښه- تيندوړے-

تندول:(تَن-د-ول)مصدر متعدي- (۱)تندول- تېزول- جلتول- چټک کول- چستول- (۲)پهٔ غصه کول-

تندوله:(تَن-دو-له)اسم- واحد- مؤنث- تندولے- دنجکه- تاندوله- سورګلے- وړې وړې پاڼې او سور ګل لرونکے يو بوټے-

تندولے:(تَن-دو-لے)اسم- وګورئ تندوله-

تندون:(تَن-د-ون)حاصل مصدر- وګورئ تندول-

تندونکے:(تَن-د-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تندونکي- مؤنث تندونکې- وګورئ تندول-

تندونکے:(تَن-د-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تندونکي- مؤنث تندونکې- وګورئ تندول-

تندونه:(تَن-د-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تندول-

تندونے:(تَن-دو-نے)اسم- واحد- مذکر- چندونے- دَ غوږ پوڅکي- دَ غوږ نرمي- دَ غوږ پوستکي- جمع تندوني-

تندوے:(تَن-دهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- تنديوے- دَ سينې کرپندے مېوکے- سرپښتے- دَ پښتۍ سر-

تنده:(تَن-ده)اسم- (۱)تږے والے- دَ اَبو خواهش- (۲)خشکي- سوکړه-

تنده:(تَن-ده)اسم- لاتے- خوز- يو قسم ازغن بوټے چې اوښان ئې خوري-

تندي:(تَن-دي)اسم- مؤنث- توندي- تلوار- تادي- جلدي- بيړه- تېزوالے- جلتي- (م- فارسي)-

تنديار:(تَند-يار)اسم- واحد- مؤنث- تندار- تيندار- چاچي- دَ ترهٔ بِنځه-

تنديوے:(تَن-دي-وے)اسم- وګورئ تندوړے-

تندېدل:(تَن-دي-دل)مصدر لازم- تېزېدل- چابکېدل- چټکېدل- جلتېدل-

تندېدن:(تَن-دي-دن)حاصل مصدر- وګورئ تندېدل-

تندېدنګ:(تَن-دي-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تندېدل-

تندېدونکے:(تَن-دي-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تندېدونکي- مؤنث تندېدونکې- وګورئ تندېدل-

تندېدهٔ:(تَن-دي-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تندېدل-

تندي:(تَن-دي)اسم صفت- واحد جمع- مؤنث نوې لنګه غوا، مېښه، چېلۍ وغيره- دَ زاړې ضد-

تندے:(تَن-دے)اسم- واحد- مذکر- غنډ- غنډمنډ- ګړد-

تندے:(تَن-دے)اسم- واحد- مذکر- وچولے- تنده- وچوېلے- جمع تندي-

تندے:(تَن-دے)اسم- دَ هر حيوان تازه زېږېدلے بچے- جمع تندي-

تنړس:(تَن-ړس)اسم- خرړکے- کاپرخولي- دَ خرهٔ بکه-

تنړل:(تَن-ړل)مصدر متعدي- تندل- رغول- جوړول- پيوندول-

تنړلے:(تَن-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تنړلي- مؤنث تنړلې- وګورئ تنړل-

تنړن:(تَن-ړن)حاصل مصدر- وګورئ تنړل-

تنړنګ:(تَن-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ تنړل-

تنړنه:(تَن-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تنړل-

تنړو:(تَن-ړو)اسم صفت- واحد- مذکر- ګېډور- ډېر خوراک کونکے- خوراکي- زيات خور-

تنړوس:(تَن-ړوس)اسم- دَ سپرلي پهٔ موسم کښې راززرغونېدونکي يو قسم واښهٔ-

تنړويک:(تَنړ-ويک)اسم- اتنګ- ګوزے- کرېوزے-

تنزل:(تَ-نز-زُل)اسم- ټيټ والے- ښکته والے- غرځېدنه- زوال- کمے- کوزېدنه- (م- عربي)-

تنزيل:(تَن-زيل)کمېدنه- ټيټېدنه- ښکته کېدنه- رالوېدنه- (م- عربي)-

تنزيلول:(تَن-زي-ل-ول)مصدر متعدي- ټيټول- کمول- غرځول- ښکته کول- کمول-

تنزيلېدل:(تَن-زي-لي-دل)مصدر لازم- کمېدل- ټيټېدل- رالوېدل- ښکته کېدل-

تنسته:(تَ-نَس-ته)اسم- (۱)هغه تارونه چې دَ کپړې پهٔ وړدوالي کښې استعمال شوي وي- (۲)دَ جولاګي جاله-

تنسته بوده:(تَ-نَس-ته-بو-ده)اسم صفت- سرځنه- جوړونه- رغونه-

تنسوکه:(تَن-سو-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يو قسم نرۍ قيمتي کپړه- (۲)شان- شوکت- عظمت- لوئي-

تنسيخ:(تَن-سيخ)اسم- منسوخونه- باطلونه- رد کونه- (م- عربي)-

تنشا:(تَن-شا)اسم- فخر- لوئي والے- دبدبه- شان شوکت- شهرت- جلال- (افغانستان)-

تنشن:(تَن-شن)اسم- دروندوالے- زور- لنګر- فشار- (افغانستان)-

تنصيف:(تَن-صيف)اسم- نيمونه- برابرې دوه ټکړې کونه- پهٔ دوؤ حصو کښې

ټ (ټي-رل)، ډ (ډي-ره-ول)، ړ (ړيا-لي)، ڼ (ټن-دي) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

تقسیمونه-

تنظیم:(تن-ظیم)اسم- (۱)پهٔ نظم کښې راوستنه- سمون- برابرتیا- برابرونه- بندوبست- انتظام- پهٔ ترتیب ایښونه- (۲)ډله- غنډه- پارټی-

تنظیمول:(تن-ظی-م-ؤل)مصدر متعدی- برابرول- روښول- سمول- پهٔ ترتیب ایښودل-

تنظیمونکے:(تن-ظی-م-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تنظیمونکی- مؤنث تنظیمونکې- وګورئ تنظیمول-

تنظیمونه:(تن-ظی-م-ؤهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تنظیمول-

تنفس:(ت-نف-فس)اسم- (۱)سا راکښنه- سا اخستنه- سلېدنه- (۲)سالنړے-

تنقید:(تن-قید)اسم- واحد- مذکر- لټون- جاچ- دَ څهٔ کلام ښهٔ والے یا بدوالے پهٔ ګنه کونه- تنقیدونه- (م- عربی)-

تنقیدی:(تن-قی-دی)اسم- دَ تنقید سره تعلق لرونکے- (م- عربی)-

تنقیص:(تن-قیص)اسم- (۱)کمونه- لږونه- (۲)ناقصونه- (م- عربی)-

تنقیط:(تن-قیط)دَ لیک نښې لکه ډېش ( - )، کامه ( ، )، فل سټاپ ( ۰ )، انورټډ کامه ( " " ) وغېره-

تنک مزاج:(ت-نک-م-زاج)اسم صفت- واحد- مذکر- خشکی- غصه ناک-

تنکوالے:(ت-نک-وا-لے)اسم- خشکی والے- دَ غصې حالت- قهرژنی-

تنکی توب:(تن-کی-توب)اسم- تنکی والے- تازه والے- تنکیتیا-

تنکیتیا:(تن-کی-تیا)اسم- وګورئ تنکی والے-

تنکے:(تن-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کچه- نرم- نازک- تازه- (۲)نوے ټوکېدلے- (۳)نوے پېدا شوے- جمع تنکی-

تنګ:(تنګ)اسم صفت- واحد جمع- مذکر- (۱)کم بر او سور لرونکے- دَ ارت ضد- (۲)تربت- پرېشانه- تکلیف کښې- غریب- خوار- اړ- محتاج- (۳)تنکے- دَ غرونو پهٔ منځ کښې لار- (۴)تانګ- مؤنث تنګه- جمع مؤنث تنګې- (م- فارسی)-

تنګ:(تنګ)اسم- کوزه- وړوکے منګے-

تنګاچه:(تنګ-ګا-چه)اسم- واحد- مؤنث- دونګاچه- تنګاچه- تنګاڅه- سوپه- ډبه- صوفه- چوتره- جمع تنګاچې-

تنګ ترش:(تنګ-ترش)اسم صفت- مذکر- (۱)ډېر زیات تنګ- (۲)نښتے- دَ ارت بیرت ضد- مؤنث تنګه ترشه-

تنګ توب:(تنګ-توب)اسم- تنګتیا- تنګسیا- تنګوالے-

تنګ تیا:(تنګ-تیا)اسم- وګورئ تنګ توب-

تنګڅه:(تنګ-څه)اسم- واحد- مؤنث- غریبی- تنګسه- نېستی-

تنګ خلے:(تنګ-خ-لے)اسم- واحد- مذکر- خاورین منګے یا چاټی چې خله یې تنګه وی- دَ تنګی خلی څیز-

تنګ خېلے:(تنګ-خي-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ ارت خېلے ضد- تنګه خله لرونکے- (۲- اسم)دَ اخری چارشنبې یا صفرې پهٔ ورځ دَ چوری یو رسم-

تنګ دارو:(تنګ-دا-رو)اسم- هغه دارو چې زنانه یې دَ خپلو متیازو دَ ځائې دَ تنګولو دَ پاره استعمالوی-

تنګدست:(تنګ-دست)اسم صفت- واحد- مذکر- تنګ لاسے- عاجز- خوار- غریب- جمع تنګدستی/تنګدستیان- مؤنث تنګدسته- جمع مؤنث تنګدستې-

تنګدستی:(تنګ-دس-تي)اسم- مؤنث- تنګسه- تنګسیا- عاجزی- خواری- دَ تنګدست جوړېدو حالت-

تنګدل:(تنګ-دل)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تنګ زړے- لنډپارے- بې حوصلې- (۲)زهیر- خفه- جمع تنګدلان- مؤنث تنګدله- جمع مؤنث تنګدلې-

تنګړی:(تنګ-ګ-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- دره- تنګے- تنګې- تنګ- دَ دوؤ غرونو تر مېنځه لار-

تنګ زړے:(تنګ-زهٔ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ تنګدل- جمع تنګ زړی-

تنګسی:(تنګ-سي)اسم- خواری- عاجزی- تنګدستی- تنګسه- تنګسیا-

تنګسیا:(تنګ-سیا)اسم- وګورئ تنګسه-

تنګسیانه:(تنګ-سیا-نه)اسم- تنګسی- غریبی-

تنګ کوچ:(تنګ-کوچ)اسم- دَ ملکانو دَ شطرنج غندې یوه لوبه- زمرے- پچیس- خطکی-

تنګ لاسے:(تنګ-لا-سے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوار- غریب- مفلس- نېستمن- بې شتو- عاجز- تنګدست- جمع تنګ لاسی- مؤنث تنګ لاسې-

تنګنا:(تنګ-نا)اسم- مؤنث- دره- ناوه- وت- جمع تنګناوې-

تنګ نظری:(تنګ-نظ-ری تنګ-ن-ظ-ری)اسم- مؤنث- بدنیتی- حسد- بخیلی- سوکت والے- سوکتی- خسیستوب-

تنګوالے:(تنګ-وا-لے)اسم- تنګی- تنګدستی- غریبی- خواری- عاجزی- کم والے- لنډوالے-

تنګورے:(تنګ-ګو-ړے)اسم- مذکر- تنګنا- تنګے- تنګ- تنګ ځائې-

تنګول:(تنګ-ګ-ول)مصدر متعدی- تکلیف ورکول- پاذابول- خورول- پهٔ عذابول- پرېشانه کول-

تنګون:(تنګ-ګ-ون)حاصل مصدر- وګورئ تنګول-

تنګونکے:(تنګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تنګونکی- مؤنث تنګونکې- وګورئ تنګول-

تنګونګ:(تنګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تنګول-

تنګونه:(تنګ-ګ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تنګول-

تنګه:(تنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- میله- ډرمه- دَ بوټی ډنډر- سټه- تنا-

تنګه:(تنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دره- دَ دوؤ غرونو تر مېنځه ځائې- جمع تنګې-

تنګه:(تنګ-ګه)اسم صوت- هغه آواز چې اوښ ته دَ چو کولو او بارولو پهٔ

وخت کولے شي-

تنکه:(تنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- د پخواني زماني يوه سکه-

تنکه:(تنګ-ګه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د تنګ مؤنث- وګورئ تنګ- جمع تنګي-

تنګي:(تنګ-ګي)اسم- تنګسيا- نېستي- فقر- غريبي- خواري- مصيبت- سپکوالے- لاچاري-

تنګېدل:(تنګ-ګې-دل)مصدر لازم- خوربدل- خفه کېدل- نېستمن کېدل- تربټېدل- پرېشانه کېدل- خوارېدل-

تنګېدن:(تنګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تنګېدل-

تنګېدنګ:(تنګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تنګېدل-

تنګېدنه:(تنګ-ګې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تنګېدل-

تنګېدونکے:(تنګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تنګېدونکي- مؤنث تنګېدونکې- وګورئ تنګېدل-

تنګېدۀ:(تنګ-ګې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ تنګېدل-

تنګي:(تنګ-ګي)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)د غرونو په مينځ کښې لار- (۲)هغه جوال چې کرت پکښې وي-

تنګي:(تنګ-ګي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تنګي- تنګسيا- بده ورځ- لاس کوسی-

تنګي:(تنګ-ګي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تنګه کوټه- ګټ پېر-

تنميه:(تن-مي-يه)اسم- وده- نشونما- (افغانستان)-

تنور:(ت-نور)اسم- واحد- مذکر- ترون- تندور- په کور کښې يا د نانباني د روټو پخولو ځاے- جمع تنورونه- (م- عربي)-

تنورپاک:(ت-نور-پاک)اسم- مذکر- (۱)هغه کپړه چې تنور يا تبخے پرې پاکولے شي- (۲)هغه آله چې د تنور ايرې پرې راوبستے شي-

تنورچي:(ت-نور-چي)اسم- واحد- مذکر- نانبائي- روټۍ پخونکے-

تنوري:(ت-نو-ري)اسم صفت- په تنور پخه شوې روټۍ-

تنوع:(ت-نو-وُع)اسم- قسم قسم- رنګ رنګ- (م- عربي)-

تنول:(ت-ن-ول)مصدر متعدي- (۱)غرول- ګرزول- (۲)په مزي کښې پېړل- (۳)قدرمن کول-

تنولے:(ت-ن-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تنولي- مؤنث تنولې- وګورئ تنول-

تنومند:(ت-نو-مند)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- قوي- زورور- زوراور- غټ کټ- (م- فارسي)-

تنون:(ت-ن-ون)حاصل مصدر- وګورئ تنول-

تنونکے:(ت-ن-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تنونکي- مؤنث تنونکې- وګورئ تنول-

تنونګ:(ت-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تنول-

تنونه:(ت-ن-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تنول-

تنوير:(تن-وير)اسم- (۱)رڼا- رڼائي- (۲)رڼا کونه- روښانه کونه- (م- عربي)-

تنويرول:(تن-وي-ر-ول)مصدر متعدي- (۱)روښانه کول- رڼول- (۲)څرګندول- ښکاره کول-

تنويري:(تن-وي-ري)اسم- د تنوير سره متعلق-

تنوين:(تن-وين)اسم- په يو لفظ باندې د دوه زبرونو، د دوه زېرونو يا د دوه پېښونو په لګولو سره د نون اواز پېدا کونه- د دوه زبرونو، د دوه زېرونو يا د دوه پېښونو علامت- (م- عربي)-

تنه:(ت-نه)اسم- واحد- مؤنث- قد- قامت- وجود- تن- بدن- سټه- د ونې هغه برخه چې له وبخه تر څانګې رسيږي-

تنه بوده:(ت-نه-بو-ده)اسم (مرکب)- (۱)رغاونه- جوړښت- جُثه- جوثه- شکل- (۲)رنګ روغن- جمع تنې-

تنها:(تن-ها)صفت- يواځې- خاله- ګوښے- بيل- (م- فارسي)-

تنهائي:(تن-ها-ئي)اسم- (۱)جدائي- بېلتون- (۲)ګوشه نشيني-

تني:(ت-ني)صفت- ځاني- ذاتي- شخصي-

تني نا:(ت-ني-نا)اسم- ځان سره زرو ورو ګونېدنه- د ځان سره سندره وېنه- (افغانستان)-

تني:(تۀ-ني)حرف جار- ترې نه- ترې- څخه- ځني-

تنېدل:(ت-نې-دل)مصدر لازم- (۱)غرېدل- ګرزېدل- د اسمان ګرزېدل- (۲)په مزي کښې پېړلے کېدل- (۳)قدرمن کېدل-

تنېدلے:(ت-نې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تنېدلي- مؤنث تنېدلې- وګورئ تنېدل-

تنېدن:(ت-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تنېدل-

تنېدنګ:(ت-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تنېدل-

تنېدنه:(ت-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تنېدل-

تنېدونکے:(ت-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تنېدونکي- مؤنث تنېدونکې- وګورئ تنېدل-

تنېدۀ:(ت-نې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ تنېدل-

تني:(ت-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه ژبه چې په خبرو کښې بنده بنده کيږي-

تن:(تن)اسم- شعر- سندره- غزل- (افغانستان)-

تڼ:(تڼ)اسم صوت- (۱)غرمبا- غرېدنه- کڼ- کنا- (۲)کړنګېدنه- کړنګ- ترنګ- بوړېدنه-

تڼاکه:(ت-ڼا-که)اسم- واحد- مؤنث- پولۍ- پرومبې- جمع تڼاکې-

تڼ تڼ:(تڼ-تڼ)اسم صوت- ټنګ ټونګ-

تنتنا:(تن-ت-نا)اسم- (۱)شور- زور- غالمغال- (۲)شهرت- افواه-

ئ (ځي-رل)، ي (مې-ره-ول)، ی (پيا-لي)، ې (تن-دېر) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

(۲)انګازه-

تڼ توڼ:(تِڼ-تُوڼ)اسمِ صوت- مڼ موڼ- تڼ تڼ-

تـنهسکار:(تَ-نِس-کار)اسم- واحد/جمع- مذکر- تـنږکار-

تـنږکار:(تَ-نِ-کار)اسم- واحد/جمع- مذکر- تـنهسکار- دَ خاوري پهٔ شان يو کاڼے چې حکيمان يې دَ دارو دَ پاره تجويز کوي-

تـنکار:(تَ-نِ-کار)اسم- (۱)تنکهار- (۲)سخته يخني-

تـنکار:(تَ-نِ-کار)اسم- يوه ماده چې خوند او بوئ دواړه نهٔ لري- مسکران يې دَ لوښو پاکولو- سپينولو او جوړولو دَ پاره پکاروي- سائنسي نوم نوشادر امونيم کلورائيډ-

تـنکئ:(تِن-کئ)اسم- نرئ نرئ پاڼي-

تـنول:(تَ-نِ-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)وهل ټکول- پهٔ لتو وهل- (۲)نيمخاله کول- لهٔ لاده باده ايستل- (۳)غړول- پهٔ تـنها راوستل- (۴)دَ زمرى غرمبول-

تـنون:(تَ-نِ-ون)حاصل مصدر- وګورئ تـنول-

تـنونکے:(تَ-نِ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تـنونکي- مؤنث تـنونکې- وګورئ تـنول-

تـنونګ:(تَ-نِ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تـنول-

تـنونه:(تَ-نِ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تـنول-

تـنهار:(تَ-نِ-هار)اسم صوت- دَ نرى اواز شور-

تـنهار:(تَ-نِ-هار)اسم صوت- تـنا- تـنا- (۱)دَ اسمان دَ ګړز ګروز اواز- (۲)دَ زمرى يا پړانګ اواز-

تـنهارے:(تَ-نِ-ها-رے)اسم صوت- تـنيدنه- تن تن کونه-

تـنيار:(تن-يار)اسم- مذکر- مغه سړے چې لهٔ وريښمو تـنى جوړوي-

تـنې تـنې:(تَ-نې-تَ-نې)اسم صفت- ترازې ترازې- کارې وارې-

تـنيدل:(تَ-نې-دل)مصدر لازم- (۱)دَ زمرى غرمبيدل- دانګل- ترپيدل- (۲)پهٔ بڼ کښې دَ نينو ټقارے کول-

تـنيدلے:(تَ-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تـنيدلي- مؤنث تـنيدلې- وګورئ تـنيدل-

تـنيدن:(تَ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تـنيدل-

تـنيدنګ:(تَ-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تـنيدل-

تـنيدنه:(تَ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تـنيدل-

تـنيدونکے:(تَ-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تـنيدونکي- مؤنث تـنيدونکې- وګورئ تـنيدل-

تـنيدهٔ:(تَ-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تـنيدل-

تـنې ونې:(تَ-نې-وَ-نې)اسم صفت- ضائع- تـنې ونې-

تـنى:(تَ-نى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بڼن- تکمه- تسمه- ګروې-

تـنى:(تَ-نى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ اَس يا خر سينه بند-

تو:(تو)اسم صوت- دَ توکلو اواز-

تو:(تو)کلمه- دَ لعنت او نفرت کلمه- تُف-

تو:(تو)اسم- (۱)توت- (۲)تودوالے- تودوخې- تاؤ- (۳)غصه-

تو:(تو)اسم صوت- دَ سپى دَ رابللو اواز-

توا:(تو-وا)اسم صوت- توشکارنه- ښکارنه- سپى ښکار پسې پاروله-

تواب:(تَ-واب/تو-واب)صفت- توبه منظوروونکے- الله تعالى- (م- عربى)-

تواتر:(تَ-وا-تر)اسم- برابر- پله پسې- پرله پسې- يو مخيز- (م- عربى)-

تواتو:(تهٔ-وا-تو)اسم- دَ غير شرعي او ناروا پيسو دَ پيدا کولو لاره- (افغانستان)-

تواچى:(تَ-وا-چى)اسم- تباشى- دَ کلى دَ ملک مرسته کونکے- دَ کلى دَ مشر مرستيال- (افغانستان)-

توار:(تَ-وار)اسم- واحد- مذکر- يوه مشهوره کپړه-

توارث:(تَ-وا-رث)اسم- وراثت- پهٔ ميراث اخستنه- (م- عربى)-

توارد:(تَ-وا-رد)اسم- پهٔ يو وخت او يو ځاي راتلنه- دَ دوؤ مختلفو شاعرانو دَ شعرونو پهٔ معنو کښې يو شان والے- (م- عربى)-

تواره:(تَ-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم کپړدي- جونګړه- جمع توارې-

تواريخ:(تَ-وا-ريخ)اسم- جمع- دَ تاريخ جمع- دَ تيرو وختونو دَ حالاتو کتاب-

توار:(تَ-وار)اسم- مذکر- يو قسم کپړه-

تواره:(تَ-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- سائبان چې دَ دوکانونو مخکښې دَ سيورى دَ پاره لګولے شى- (م- پنجابى)-

توازن:(تَ-وا-زن)اسم- برابرى- يو شان والے- برابروالے- پهٔ يو وزن کيدنه-

تواضع:(تَ-وا-ضع)اسم- خاکسارى- عاجزى- کمينى- خاطر- مدار- نياز- نذر- دعوت- ميلمستيا- دَ تکبر ضد- (م- عربى)-

توافق:(تَ-وا-فق)اسم- برابريدنه- خوښي-

توالد:(تَ-وا-لد)اسم- دَ اولاد پيدا کونه-

توام:(تَ-وام)اسم- غبرګ- جوړه- غبرګوني- دوه ماشومان چې پهٔ يو وار دَ مور نه پيدا شى- (۲)يو ځاي- پرله پسې- پيوست- (م- عربى)-

توامان:(تَ-وا-مان)دَ نستعليق خط- پيچيده او نفيتے خط- (افغانستان)-

توان:(توان)اسم- وس- طاقت- زغم-

توانا:(تَ-وا-نا)اسم صفت- مضبوط- طاقتور- زورور- زبردست- (م- فارسى)-

توانائى:(تَ-وا-نا-ئى)اسم- طاقت- زور- وس- قوت- قدرت- (م- فارسى)-

توانګر:(تَ-وانګ-ګر/توان-ګر)اسم صفت- مذکر- شتهٔ من- دولتمند- زورور- دَ نيستمن ضد- مالدار- بختور- (م- فارسى)-

توانګرى:(توان-ګهٔ-رى)اسم- دَ توانګر جوړيدو حالت-

توانول:(توا-نِ-وَل)مصدر متعدي- توان ورکول- امداد ورکول- پاڼ ورکول- کومک ورکول-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زوورکے"(شل)، پيش"(نو-کا-ره)، زبر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ه"(ژ-ره)، ۀ"(يو-بې-دهٔ)

(۲)غوړه- هغه خوراک چې باز ته ورکولے شي- جمع تومې-

تومېدل:(تو-مې-دل)مصدر لازم- (۱)کرېدل- خاربښتېدل- (۲)مایه کېدل- خمبیره کېدل-

تومېدن:(تو-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تومېدل-

تومېدنګ:(تو-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تومېدل-

تومېدنه:(تو-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تومېدل-

تومېدونکے:(تو-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تومېدونکی- مؤنث تومېدونکې- وګورئ تومېدل-

تون:(تون)اسم- جونګړه- کوډله- کوډی- ساله- سالګی-

تون:(تون)لاحقه- دَ ځایَ دَ څرګندولو لاحقه- (افغانستان)-

تون:(تون)اسم- واحد- مذکر- تون- دَ سریخ دَ خاندان یوه ونه-

تونالت:(تو-نا-لت)کلمهٔ نفرت- تولعنت- لعنت ملامت-

تونبړی:(تونَب-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تونبے- هغه کدو چې پاړوګان ترې بیم جوړوی- (م- هندی)-

تونډخویه:(تونَد-خو-یه)اسم صفت- مذکر/مؤنث- تېز خویَ لرونکے- غصه ناک- تندخویه-

تونډوالے:(تونَد-وا-لے)اسم- تېزی- چُستی-

تونده:(تون-ده)اسم- واحد- مؤنث- لونده مړی- غوړه مړی-

تونده:(تون-ده)صفت- (۱)دَ وچې ضد- لونده- زیم- (۲)اسم- دشمنی- (افغانستان)-

توندی تېزی:(تون-دی-تې-زی)اسم- تېزی- بیړه- چابک دستی-

تونړه:(تون-ړه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- اسوده حال- پهٔ کور پوره- چې مال حال یُ برابر وی- چې څهٔ حاجت نهٔ لری-

تونس:(تونَس)اسم- واحد- مذکر- دباؤ- دړکه- جمع تونسونه-

تونک:(تو-نک)اسم صفت- مذکر- غصه ناک- قهرژن- خشکی-

تونګ:(تونګ)اسم صفت- کړوړ- شیندلے- خورروړ- تس نس-

تونګ:(تونګ)اسم- وګورئ توم-

تونګ:(تونګ)اسم- واحد- مذکر- دَ خاورژ کوزه- صراحی-

تونګ:(تَ-ونګ)اسم- (۱)پېټار- دَ زنانؤ دَ کالیو ساتلو ټوکری- (۲)دَ پوړی ابښوو تخته- جمع تونګونه-

تونګ:(تونګ)اسم- واحد- مؤنث- پېغله جینی- جمع تونګې-

تونګ:(تونګ)اسم- واحد- مذکر- خزانه- مخزن- ذخیره ګاه- دَ غلې ګودام- (افغانستان)-

تونګاچه:(تونَګ-کا-چه)اسم- واحد- مؤنث- وستل- دونکاچه- دَ ناستی دپاره جوړ کړے شوے ځایَ- جمع تونګاچې-

تونګر:(تَ-ونَګ-ګر)اسم- توانګر- شتهٔ مند- توان لرونکے- غنی- دولتمند- مالدار- موړ- مؤنث تونګره- جمع مؤنث تونګرې- (م- فارسی)-

تونګړه:(تونَګ-ګهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- بود- اخستنه- دَ چا نه څهٔ بودونه- جمع تونګړې-

تونګه:(تونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- تونګ- خوانه جینې- رسېدلې پېغله- جمع تونګې-

تونګی:(تونَګ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)پټاری- خورجین- تونګے- (۲)کجاوه-

تونګے:(تونګ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ مېزری ټوکری- لهٔ مېزری یا کیو جوړه صندوقچه یا بسته- جمع تونګی-

تونګے:(تونګ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)خېلانګې- جیلغ- (۲)وندنے- دَ مېزری یو بل پسې تړلې پانړې چې دَ څتری تړلو دَ پاره پکارولے شي- جمع تونګې-

تون لعنت:(تون-لع-نت)کلمهٔ نفرت- تونالت- تولعنت- لعنت ملامت-

تونه:(توهٔ-نه)اسم- تومنه- توملہ- (افغانستان)-

تونه سیبون:(توهٔ-نه-سی-بون)اسم- دَ کروندې تخم- وګورئ تومنه-

توڼه:(تو-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- ټوڼه- جمع توڼې-

توڼه:(تو-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- رغوڼه- څېره- مخ- بڼه- قد- قیافه- قواره- مشاده- (افغانستان)-

توبه:(تو-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غنډسکی لوبه- دَ پنډوسکی لوبه- جمع توڼې-

توڼی:(تو-ڼی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ الماری پهٔ شان دَ لرګی هغه صندوق چې وچتې پښې لری او عموماً دَ برستنو ایښوو دَ پاره پکارولے شي-

توول:(تو-ول)مصدر متعدی- توېول- تلول- بیول- توې کول-

تووُلے:(تو-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع توولی- مؤنث توولې- وګورئ توول-

توون:(تو-ون)حاصل مصدر- وګورئ توول-

توونکے:(تو-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع توونکی- مؤنث توونکې- وګورئ توول-

توونګ:(تو-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ توول-

تووُنه:(تو-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ توول-

توه:(تَ-وه)اسم- واحد- مؤنث- دَ زمکې برید یا کچه پوله- جمع توې- (افغانستان)-

توه:(تَ-وه)اسم- واحد- مؤنث- خاورین تبخے- تبی- دَ ټیکری تبخے- جمع توې-

توه:(تَ-وه)اسم- کووتی- ګاړه- دَ پیو پهٔ لوښی دَ پېروی لاندې پاتې شوې برخه- (افغانستان)-

توه:(تَ-وه)اسم- (۱)دَ شاتوت ونه- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ شاتوت- (۲)خوند- ذائقه- مزه-

توه کی:(تَ-وه-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- تود کانړے- توده کنجکه-

توده تیره- دْ ماشومانو یوه لوبه-
تومړ:(تو-مړ)اسم- دْ زرګوټي یا دْ زقم بوټے- نباتاتي نوم یوفوربیا نېری فولیا (EUPHORBIA NERIFOLIA ROXB)- (م- هندی)-
توکی:(ته-وه-کی)اسم- واحد- مؤنث- کرمه تیره-
توهم:(تَ-وه-هُم)اسم- وهم- اندېښنه- وسواس- ګومان- شک- (م- عربی)-
توهین:(تَو-هین)اسم- بې عزتي- سپکاوے- (م- عربی)-
تونی:(تو-نی)اسم- واحد- مؤنث- دْ قمیص دْ تنو پټی-
تویالکه:(تو-یال-که)اسم- واحد- مؤنث- دېګ- دېګچے- جمع تویالکې- (افغانستان)-
تویغ:(تَ-ویغ)اسم- واحد- مذکر- پېټے- ذمه واری-
تویغ:(تَ-ویغ)اسم- واحد- مذکر- دْ قبائلو دْ تقسیم نوم چې دْ سرمایو او څوکی دْ تقسیم دْ پاره استعمالیږی-
توېند:(تو-یند)اسم صفت- رژېدونکے- تویېدونکے-
تویول:(تو-یه-وَل)مصدر متعدی- (۱)اړول- عبث کول- مائع څیز پهْ زور غرځول- (۲)رژول- دوړول-
تویولے:(تو-یه-وهْ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تویولی- مؤنث تویولې- وګورئ تویول-
تویون:(تو-یه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تویول-
تویونکے:(تو-یه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تویونکی- مؤنث تویونکې- وګورئ تویول-
تویونګ:(تو-یه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تویول-
تویونه:(تو-یه-وهْ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تویول-
تویېدل:(تو-یې-دَل)مصدر لازم- (۱)اوړېدل- ضائع کېدل- دْ مائع څیز پهْ زوره ګوزارېدل- (۲)رژېدل- دوړېدل-
تویېدن:(تو-یې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تویېدل-
تویېدنګ:(تو-یې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تویېدل-
تویېدنه:(تو-یې-دهْ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تویېدل-
تویېدونکے:(تو-یې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تویېدونکی- مؤنث تویېدونکې- وګورئ تویېدل-
تویېدهْ:(تو-یې-دهْ)حاصل مصدر- وګورئ تویېدل-
تویْ:(توی)صفت- (۱)تل شوے- ضائع- (۲)فضول- عبث-
تویْ:(توی)اسم- زادهْ- ورا- دْ ناوې دْ وړلو رسم- (افغانستان)-
تویېدل:(توی-دَل)مصدر لازم- وګورئ تویېدل-
توی:(تَ-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تبی- کرېچی- وړوکے کړے-
تویے:(تویے)اسم- دْ کدو رمه- کنډک- (افغانستان)-
تویے:(تویے)اسم- واحد- مذکر- سېلاب- خوړ- نیز- لګړ-
ته:(ته)حرف- (۱)دْ ظرف، صلې، جار، تعلق، ربط او نورو مختلفو معنو دْ پاره استعمالېدونکے حرف- (۲)پورې ورپورې- (۳)پهْ ذمه-

ته ترین:(ته-تَ-رین)اسم- تاترین- ډېر ښکته- تحت الثّریٰ-
تهْ:(تهْ)اسم ضمیر- دْ مفرد مخاطب ضمیر-
تهاجم:(تَ-ها-جُم)اسم- یو پهْ بل حمله کونه- برید کونه- (م- عربی)-
تهتک:(تَ-تک)اسم- خښتک-
تهجد:(تَ-هَج-جُد)اسم- دْ نیمې شپې نه پس ته عبادت کونه- دْ شپې نمونځ- (م- عربی)-
تهجدګزار:(تَ-هج-جُد-ګُ-زار)اسم- تهجد کونکے- مؤنث تهجدګزاره- جمع مؤنث تهجدګزارې-
تهجی:(تَ-هَج-جی)اسم- هجې کونه- دْ حرفونو مفرد وئېنه- ابڅې- پېڅې- (م- عربی)-
تهداب:(ته-داب)اسم- بنیاد- (افغانستان)-
تهدید:(ته-دید)اسم- ډارونه- ویرونه- (م- عربی)-
تهدیدول:(ته-دی-دَ-ول)مصدر متعدی- ویرول- ډارول- (افغانستان)-
تهدیدولے:(ته-دی-دَ-وهْ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تهدیدولی- مؤنث تهدیدولې- وګورئ تهدیدول-
تهدیدون:(ته-دی-دَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ تهدیدول-
تهدیدونکے:(ته-دی-دَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تهدیدونکی- مؤنث تهدیدونکې- وګورئ تهدیدول-
تهدیدونګ:(ته-دی-دَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تهدیدول-
تهدیدونه:(ته-دی-دَ-وهْ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تهدیدول-
تهذیب:(ته-ذیب)اسم- تمدن- ښهْ اخلاق- سریتوب- شائستګی- انسانیت- دْ یوې معاشرې دْ ژوند تېرولو مروّجې لارې چارې- مادی ترقی- (م- عربی)-
تهذیبی:(ته-ذی-بی)اسم- دْ تهذیب سره متعلق-
تهلکه:(ته-لَ-که)اسم- هلاکت- بربادی- (م- عربی)-
تهلیل:(ته-لیل)اسم- دْ "لا الــه الا اللهْ" ورد- کلمهْ طیبه بار بار وئېل- (م- عربی)-
تهمت:(ته-مَت)اسم- تومت- تور- بدنامی- الزام- جمع تهمتونه-
تهمتی:(ته-م-تی)اسم- دْ تهمت سره متعلق-
تهن:(تَ-هن)اسم صفت- ژور- ښکته- غوچ-
تهنه:(تَ-هَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غار- زمکه کښې دننه ووړد ځاې- (۲)ژور ځاې- ژوروالے-
تهور:(تَ-هو-ور)اسم- بهادری- شجاعت- زړهْ ورتیا- (عام طور سره دْ حېوان خصلت)- (م- عربی)-
تهه:(تَ-هه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تامه- تا- برخه- پرده- پړک- رده- طبقه- ټت- (۲)پوړی- (۳)ته- دْ کپړې سور- بر- جمع تهې-
تهی:(تَ-هی/تِ-هی/تُ-هی)صفت- تش- خالی- چې ډک نهْ وی- (م- فارسی)-
تهی خو:(تَ-هی-خو)اسم صفت- بدخویه-

ي" (ښې-رل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دْ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

تهي دست:(تَ-مي-دست/تَ-مي-دستَ/تَ-مي-دستَ)اسم صفت- مذکر- بې وسه- نادار- غريب- تش لاسے-

تهي دماغ:(تَ-هي-د-ماغ/تِ-هي-د-ماغ/تَ-هي-د-ماغ)اسم صفت- مذکر- کم عقل- بېوقوف- ناپوه-

تهيه:(تَ-هي-يه)اسم- برابرونه- تيارونه- (م- عربي)-

تهېدل:(تَ-هې-دل)مصدر لازم- رپېدل- رپونېدل- دکېدل- (افغانستان)-

تهېدن:(تَ-هې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تهېدل-

تهېدنګ:(تَ-هې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تهېدل-

تهېدنه:(تَ-هې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تهېدل-

تهېدونکے:(تَ-هې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تهېدونکي- مؤنث تهېدونکې- وګورئ تهېدل-

تهېدهٔ:(تَ-هې-دهٔ)حاصل مصدر از د ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تهېدل-

تيا:(تَيا)لاحقه- دَ پښتو ژبې يوه لاحقه چې عام طور سره لهٔ صفته اسم جوړوي- لکه دَ زړهٔ زر نه زړهٔ ورتيا-

تيار:(تَ-يار)اسم صفت- (۱)اماده- مستعد- (۲)مکمل- روغ- جوړ- چاق- چاغ- (۳)غټ پټ- تازه- ځرب- تکړه- (۴)خواني ته رسېدلے- پوخ- بالغ- مؤنث تياره- جمع مؤنث تيارې- (م- عربي، فارسي)-

تيارخور:(تَ-يار-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تياره خوړونکے- (۲)بېکاره-

تيارلک:(تَ-يار-لک)اسم صفت- واحد- مذکر- تيارلکو- تيارلکے- تيارخور- تياره خوړونکے-

تيارلکو:(تَ-يار-ل-کو)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ تيارلک-

تيارلکے:(تَ-يار-ل-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ تيارلک-

تيارول:(تَ-يا-ر-ول)مصدر متعدي- (۱)اماده کول- دَ څهٔ کار دَ پاره راضي کول- (۲)درستول- سمول- جوړول- پخول- (۳)غټول- ځربول- (۴)سمبالول-

تيارون:(تَ-يا-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ تيارول-

تيارونکے:(تَ-يا-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تيارونکي- مؤنث تيارونکې- وګورئ تيارول-

تيارونګ:(تَ-يا-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تيارول-

تيارونه:(تَ-يا-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تيارول-

تياره:(تَ-يا-ره)اسم صفت- (۱)دَ تيار مؤنث- وګورئ تيار- (۲)دَ خپل ضرورت دَ پاره پخ شوي روټي يا ښکرېے چې دَ مېلمه دَ پاره استعمال کړے شي-

تياره:(تَيا-ره)متعلق فعل- تر اوسه- تر اوسه واره-

تيارهٔ:(تَيا-رهٔ)اسم- دَ رڼا ضد- تورتيپ- تورتم- تاريکي- جمع تيارې-

تيارهٔ:(تَيا-رهٔ)اسم صفت- تور- تاريک-

تياري:(تَ-يا-ري)اسم- واحد- مؤنث- تيارېدنه- بندوبست- اماده کېدنه- جمع تياري/تيارياني-

تيارېدل:(تَ-يا-رې-دل)مصدر لازم- (۱)اماده کېدل- دَ څهٔ کار دَ پاره راضي کېدل- (۲)پخېدل- جوړېدل- (۳)غټېدل- ځربېدل- (۴)سمبالېدل-

تيارېدن:(تَ-يا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ تيارېدل-

تيارېدنګ:(تَ-يا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ تيارېدل-

تيارېدنه:(تَ-يا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تيارېدل-

تيارېدونکے:(تَ-يا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تيارېدونکي- مؤنث تيارېدونکې- وګورئ تيارېدل-

تيارېدهٔ:(تَ-يا-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ تيارېدل-

تيالکه:(تَيال-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ خاورو کټوي- کټوه- جمع تيالکې-

تيپ:(تيپ)اسم- واحد- مذکر- ټولے- دَ فوځ قطار- جمع تيپونه- (افغانستان)-

تيپ خون:(تيپ-خون)اسم- جمع- مذکر- توپ خين- بېتهريانې- مسالې- کاتي- سيلونه- ټارچ-

تيت:(تيت)اسم صفت- دانه وانه- ګډوډ- پرېشانه- خور وور- نستلے- کري پيرى- تيت پرک-

تيت پرت:(تيت-پ-رت)اسم صفت- اخوا دېخوا- تيت و پرک-

تيت پرک:(تيت-پ-رک)اسم صفت- وګورئ تيت-

تيت پړک:(تيت-پ-ړک)اسم صوت- دَ مرز اواز- پيت پړق-

تيتر:(تي-تر)اسم- واحد- مذکر- دَ تنخري پهٔ شان دَ خړ يا دَ تور برګ رنګ يو مارغهٔ- جمع تيتران سائنسي نوم فرېنکولينس (FRANCOLINUS)-

تيترې:(تيت-رې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)خومبه- خرېړۓ ګوګے- پوڅے- دوړنګ- خرېکے- (افغانستان)- (۲)دَ خرېړو اچار- دَ نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ خرېړے-

تي تړ:(تي-تړ)اسم- واحد- مذکر- هغه کپړه چې سينه پرې تړلے شي- سينه بند- (افغانستان)-

تيت و پرک:(تيت-و-پ-رک)اسم صفت- وګورئ تيت پرک-

تيتول:(تي-ت-ول)مصدر متعدي- نستل- پرېشانه کول- خور وور کول- ګډوډ کول-

تيتون:(تي-ت-ون)حاصل مصدر- وګورئ تيتول-

تيتونګ:(تي-ت-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تيتول-

تيتونه:(تي-ت-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تيتول-

تيتونکے:(تي-ت-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تيتونکي- مؤنث تيتونکې- وګورئ تيتول-

تي تي:(تي-تي)اسم صوت- دَ چرګو دَ رابللو اواز- آ آ- کت کت-

تيتي:(تي-تي)اسم- مارغهٔ- (دَ ماشومانو لهجه)-

زبر (خ-بهٔ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ه (ز-ره)، هٔ (ږو-بې-دهٔ)

تیتېدل:(تی-تې-دل)مصدر لازم- کډوډ کېدل- خور وور کېدل- پرېشانه کېدل- کیری پیری کېدل-

تیتېدن:(تی-تې-دن)حاصل مصدر- وګوری تیتېدل-

تیتېدنګ:(تی-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری تیتېدل-

تیتېدنه:(تی-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری تیتېدل-

تیتېدونکے:(تی-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تیتېدونکی- مؤنث تیتېدونکې- وګوری تیتېدل-

تیتېدهٔ:(تی-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوری تیتېدل-

تیټ کنے:(تیټ-کُ-نے)اسم- واحد- مذکر- کباز- ممس- ټپوس- جمع تیټ کُنی-

تیجو:(تی-جو)متعلق فعل- دَ پښو پهٔ نوکو کېدهٔ- پهٔ یوه سا چا ته پهٔ لوړ اواز پرله پسې وېنا کونه-

تیخور:(تی-خور)اسم- (۱)خارښت- (۲)تے رودونکے ماشوم- تیخورے-

تیخورول:(تی-خو-ر-ول)مصدر متعدی- تخنول- خارښتول-

تیخورولے:(تی-خو-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تیخورولی- مؤنث تیخورولې- وګوری تیخورول-

تیخورون:(تی-خو-ر-ون)حاصل مصدر- وګوری تیخورول-

تیخورونکے:(تی-خو-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تیخورونکی- مؤنث تیخورونکې- وګوری تیخورول-

تیخورونګ:(تی-خو-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګوری تیخورول-

تیخورونه:(تی-خو-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری تیخورول-

تیخوری:(تی-خو-ری)اسم صفت- خارښتی-

تیخوری:(تی-خو-ري)اسم- تی روی- دَ ماشوم دَ تی پېٔ خوړنه- دَ ماشوم دَ پیو ښلو موده او حالت-

تیخورېدل:(تی-خو-رې-دل)مصدر لازم- خارښتېدل- تخنېدل-

تیخورېدن:(تی-خو-رې-دن)حاصل مصدر- وګوری تیخورېدل-

تیخورېدنګ:(تی-خو-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری تیخورېدل-

تیخورېدنه:(تی-خو-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری تیخورېدل-

تیخورېدونکے:(تی-خو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تیخورېدونکی- مؤنث تیخورېدونکې- وګوری تیخورېدل-

تیخورېدهٔ:(تی-خو-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوری تیخورېدل-

تیخورے:(تی-خو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- تے رودونکے ماشوم- تیخور- جمع تیخوری-

تیخے:(تی-خے)اسم- سپرخے- سپېرخے- سومبه- جمع تیخی-

تیر:(تیر)اسم- واحد- مذکر- غشے- (شاعری)- جمع تیرونه-

تیر:(تیر)اسم- (۱)شهتیر- ګاډر- وښه- ښش- (۲)لاړے- لهړے- دستک- بروږ- (۳)دَ یوې پهٔ کُنده کېښې دَ کلکوالی دَ پاره لګېدلے لرګے- جمع تیرونه-

تیرانداز:(تیر-اَن-داز)اسم صفت- دَ غشی ویشتونکے- جمع تیراندازان-

تیراندازی:(تیر-اَن-دا-زی)اسم- دَ تیرانداز کېدو حالت یا کار-

تیربلي:(تیر-به-لي)اسم- وزر- نینګاوړ- هغه لرګے چې دَ کور دَ چت نه دَ دېوال پهٔ سر بلې باندې راوتلے وی- (افغانستان)-

تیرپرا:(تیر-پَ-را)اسم- واحد- مؤنث- تورپرا- تروپره-

تیرپرتاب:(تیر-پر-تاب)اسم- هغه فاصله چې تر کومې یو غشے تللے شي- (م- فارسی)-

تیرپرک:(تیر-پَ-رک)اسم صفت- مذکر- ګړندے- برندے- بیړندے- جلدی کونکے- تند- تادی کونکے-

تیررس:(تیر-رس)اسم- واحد/جمع- مذکر- مرنے- چې غشے يې خطا نهٔ ځی-

تیرک:(تی-رک)اسم- (۱)څانګه- (۲)دَ دړد څړیکه-

تیرک:(تی-رک)اسم- واحد- مذکر- دَ اوسپنې هغه مېخ چې دَ ژرندې دَ پَل پهٔ منځ کښې وی-

تیرکش:(تیر-کش)اسم- واحد- مذکر- ترکش- تیرکښ- جمع تیرکشونه-

تیرکښ:(تیر-کښ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سُورے چې هوا پکښې لګی- (۲)دَ مورچې سُورے- (۳)دَ غشیو کېښودو ځایْ-

تیرګر:(تیر-ګر)اسم- واحد- مذکر- غشی جوړونکے- جمع تیرګران-

تی روی:(تی-رهٔ-وی)اسم- وګوری تیخوری-

تیره:(تی-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پوخ- کامل- (۲)هغه دَ مرغی بچے چې بڼې يې پوره کړې وی- (۳)دَ کونتره یو قسم-

تیره غنے:(تیه-ره-غَ-نے)اسم- تورتم- توره تیارهٔ- تیره غنې-

تیری:(تی-ري)اسم- چاره- ترتیب- انتظام- بندوبست- کړن لاره-

تیرې:(تیه-رې)اسم- تیارې- دَ تیارهٔ جمع-

تیری:(تی-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ تتی (یېنېږې) لوبه کښې دَ منډې پهٔ وخت یو بل طرف ته پېرونه خوړنه-

تیز:(تیز)اسم- واحد- مذکر- ټیز- باد- ټرت- ټغ-

تیزارتے:(تیز-اَر-تے)اسم صفت- مذکر- (۱)تیزن- ټیزاوړ- (۲)ډارن- ویرېدونکے-

تیزاوړ:(تی-زا-وړ)اسم صفت- مذکر- (۱)ټیزاوړ- تیزن- ټیزن- (۲)بزدل-

تیزبیز:(تیز-بیز)اسم- دَ سپښتو یا ببېډیو یوه لوبه-

تیزتیزکو:(تیز-تی-زه-کو)اسم- مؤنث- تیزدکو- تیزتیزکی- ټیزټیزکی- یو قسم ګونګټه چې ماشومان يې رانیسی او پهٔ خپل لاس پرې ټیزونه اچوی-

تیزتیزکی:(تیز-تی-زه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوری تیزتیزکو-

تیزن:(تی-زن)اسم صفت- مذکر- (۱)تیزن- ټیزاوړ- (۲)ویرېدونکے-

تیک:(تیک)اسم- واحد- مذکر- (۱)نېغ- وچت- (۲)څرګند- بلنګ- جوت- ښکاره- (افغانستان)-

تیکړک:(تیک-ړک)اسم- واحد- مؤنث- توري پښې لرونکې یو قسم زانه- ساٸنسي نوم انتروپاٸډس کرګو (ANTHROPOIDUS KIRGO)- (افغانستان)-

تیکه:(تی-که)اسم- واحد- مؤنث- ټوټه- پیځانے- پوټے- ډ غوښې وړه ټکره-

تیکاه:(تی-ګاه)اسم- (۱)تیکه- سالنډے- ساه بندی- (۲)زغم- (افغانستان)-

تیکړے:(تی-کۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ریښه- رینجه- رنجه- (۲)برخه- حصه- ټوټه- جمع تیکړی-

تیکوغے:(تی-کو-غے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم روټی-

تیکه:(تی-که)اسم- واحد- مؤنث- وګوره تیکاه-

تیلک:(تی-لک)اسم- واحد- مذکر- یو قسم لباس چې پخوا به زنانۀ اغستۀ- (م- هندی)-

تیلنکے:(تی-لنک-کے)اسم- واحد- مذکر- تیلے- جمع تیلنکي-

تیلنکے:(تی-لنک-کے)اسم تصغیر- تلنګی- کنډه- وړوکې تله-

تیلنکے:(تی-لنګ-کے)اسم تصغیر- خسنے- تیلے- نرے تیلے- ډ لرګی یا واښۀ وچ او نرے شان تیلے-

تیله:(تی-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زرتار- ګلابتون- (۲)ډ زرتارو لړ- ډ زرتارو کوړی- ډ زرتارو کاړی-

تیلي:(تی-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ډ هندواني ترازه- (۲)ډ ربړ نری تسمه- (۳)ډ کوګړ کانړے-

تیلے:(تی-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه نرے چخچے چې پۀ یو سر ئې کوګړ لګېدلی وی او ډ اور بلولو ډ پاره پکارولے شی- اورلګیت- (افغانستان)-

تیلے:(تی-لے)اسم- ډ کاریز ډنډ- (افغانستان)-

تیمار:(تی-مار)اسم- ډ بیمار خدمت- (م- فارسی)-

تیماردار:(تی-مار-دار) اسم صفت- مذکر- (۱)ډ بیمار خدمت کونکے- (۲)ډ بیمار تپوس کونکے- جمع مؤنث تیمارداري- مؤنث تیمارداره-

تیمارداری:(تی-مار-دا-ری)اسم- (۱)ډ بیمار خدمت- (۲)پښتنه- تپوس-

تیمبوزک:(تیم-بو-زک)اسم- واحد- مذکر- (۱)تربوزک- بوزی- مول- کچبېز- کچپېز- (۲)کورے- کتبوز- پوزپند-

تیمبوزے:(تیم-بو-زے)اسم- تربوزک- ورسک تړنه- مول-

تیمچه:(تیم-چه)اسم- واحد- مؤنث- مشکے- هغه کڅوړه چې ډ قالین ډ ټکړې نه جوړه وی او پۀ کلیو کښې ډ ناوې سامان سره ورکولے شی- (افغانستان)-

تیمم:(تَ-یَم-مُم)اسم- واحد- مذکر- تېبون- هغه عمل چې ډ نارزغی یا ډ اُبو ډ نۀ پېدا کېدو پۀ وخت کښې ډ اودسۀ پۀ عوض کیږی-

تیموس:(تی-موس)اسم- ډ تیموس غده- ډ سینې نه پورته یوه غده-

تیناړه:(تی-نا-ړه)اسم- واحد- مذکر- اوربلک- اوراورکے-

تینبوزک:(تین-بو-زک)اسم- تمبوزک- تربوزک-

تینبوزے:(تین-بو-زے)اسم- تیمبوزے- تربوزک-

تینتیغے:(تین-تی-غے)اسم- واحد- مذکر- شینټوپی- چکی- یوه برګه شان مرغی- تینتیغی-

تین تینه:(تین-تی-نه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم مرغی- ډ تینتغی یو قسم- (افغانستان)-

تین تېرک:(تین-تې-رک)اسم- بمبېرک- ستن- بامبېرک-

تینداره:(تین-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- ترنداره- تندیاره- ککانی- ډ ترۀ ښځه- جمع تینداري-

تیندک:(تین-دک)اسم- (۱)ډغره- ټکره- تمبېدنه- (۲)دوکه- (۳)بدری- جمع تیندکونه-

تیندکه:(تین-دَ-که)اسم- واحد- مؤنث- ډ اُبو داره- فواره- ډ اُبو پشکه- جمع تیندکې- (افغانستان)-

تیندلک:(تیند-لک)اسم صفت- مذکر- ګوډے- هغه څوک چې پۀ تیندکونو ځی- جمع تیندلکی/تیندلکیان- مؤنث تیندلکه- جمع مؤنث تیندلکې- (افغانستان)-

تیندلکه:(تیند-لَ-که)اسم- واحد- مؤنث- ډ تیندلک مؤنث- وګوره تیندلک-

تیندو:(تین-دو)اسم- واحد- مؤنث- هغه ونه چې ډ پاڼو نه ئې پان جوړولے شی-

تیندوبے:(تین-دو-بے)اسم- واحد- مذکر- فواره- جمع تیندوبی- (افغانستان)-

تیندورے:(تین-دو-رے)اسم- واحد- مذکر- تیندونے- تیندوړے- ډ پوزې پېزوانګ- ډ پوزې کرپندونکے- جمع تیندوری-

تیندوړے:(تین-دو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګوره تیندورے-

تیندونے:(تین-دو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګوره تیندورے-

تیندوے:(تین-دۀ-وے)اسم- واحد- مذکر- کرپندوکے مړوکے- کرپندوکے- کړپندوکے- غضروف- جمع تیندوی-

تیندیاره:(تیند-یا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګوره تینداره- جمع تیندیارې-

تینکے:(تینک-کے)اسم- واحد- مذکر- ډ دېګ کفګیر- کوګیر- ډ دېګ څمڅی- جمع تینکی-

تینګړسه:(تینګ-ړۀ-سه)اسم- واحد- مؤنث- تینګړی- ډ ام مړوکے-

تینګړی:(تینګ-ګ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ترینګړی- تینګلی- چټکی- کوترک- تینګنی- (۲)کټه پیش-

تینګړے:(تینګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- انګڼ- غولے- انګړ- سرائ- جمع تینګړی-

تینګلی:(تینګ-ګ-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوره تینګړی-

تینګنی:(تینګ-ګ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوره تینګړی-

تینګه:(تینګ-که)اسم- واحد- مؤنث- میرګاټی- واړۀ واړۀ کاڼی چې ماشومان پرې لوبې کوی-

تینکی:(تینک-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پۀ یوه سا اُبۀ څښنه-

تینکار:(تین-کار)اسم صوت- ډ کولو اواز- ډ نینو ډ زریتولو پۀ وخت کښې

پیدا کېدونکے اواز- تبکار-

تیور:(تی-وَر)اسم- (۱)تی لرونکې- (۲)غټ تی لرونکې- (افغانستان)-

تیول:(تی-وَل)اسم- اقطاع- جاګیر- سېری-

تیه:(ت-یه)اسم صفت- دَ ښېږیو یا نورو لوبو دَ پاره دوباره کېدونکے غږ-

تیياشے:(تی-یا-شے)اسم- واحد- مذکر- سسپار-

تیی:(ته-یی)اسم- واحد- مؤنث- دائی-

تېبون:(تې-بون)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ تیمم- (۲)عزم کونه- قصد کونه- (افغانستان)-

تېپچه:(تېپ-چه)اسم- واحد- مؤنث- تپچه- دَ مرزو نیولو دَ پاره استعمالېدونکې هغه آله چې پکښې دَ لرګی دَ پاسه رېږ یا خرمن داسې لګېدلې وی چې پهٔ هغې دَ ګټو زملو پهٔ نتیجه کښې دَ مرز پهٔ شان اواز راوځی-

تبخ:(تبخ)اسم- سورلی- سوربدنه-

تېخل:(تې-خَل)مصدر متعدی- سوربدل- دَ سورلی پهٔ شا کښېناستل- دَ اصیل ځاروی په شا یا ټانګه، موټر لاری کښې کښېناستل-

تېخلے:(تې-خهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تېخلی- مؤنث تېخلې- وګورئ تېخل-

تېخن:(تې-خَن)حاصل مصدر- وګورئ تېخل-

تېخنګ:(تې-خَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تېخل-

تېخنه:(تې-خهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېخل-

تېخونکے:(تې-خُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېخونکی- مؤنث تېخونکې- وګورئ تېخل-

تېڅل:(تې-څَل)مصدر متعدی- برمه کول- پهٔ برمه سُورے کول-

تېڅلے:(تې-څهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تېڅلی- مؤنث تېڅلې- وګورئ تېڅل-

تېڅن:(تې-څَن)حاصل مصدر- وګورئ تېڅل-

تېڅنګ:(تې-څَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تېڅل-

تېڅنه:(تې-څهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېڅل-

تېڅونکے:(تې-څون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېڅونکی- مؤنث تېڅونکې- وګورئ تېڅل-

تېڅی:(تې-څی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- برمه- دَ سُوری کولو آله-

تېر:(تېر)اسم- واحد- مذکر- دوکه- فرېب- چل- غلطی- جمع تېرونه-

تېر:(تېر)اسم صفت- وړاندې- مخکښې- پخوانے- تېر شوے- (۲)مړ- (۳)بغیر لهٔ شخوند وهلو لهٔ حلقه شکته شوے-

تېران:(تې-ران)اسم- روا- جائز-

تېرابستل:(تېر-ابس-تل)مصدر متعدی- غلول- دوکه کول- ټګل-

تېرابستلے:(تېر-ابس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تېرابستلی- مؤنث تېرابستلې- وګورئ تېرابستل-

تېرابستن:(تېر-ابس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ تېرابستل-

تېرابستنګ:(تېر-ابس-تَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تېرابستل-

تېرابستنه:(تېر-ابس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېرابستل-

تېرابستونکے:(تېر-ابس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېرابستونکی- مؤنث تېرابستونکې- وګورئ تېرابستل-

تېرابستهٔ:(تېر-ابس-تهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ تېرابستل-

تېربوړے:(تېر-بو-ړے)اسم- واحد- مذکر- چارمغز- مټک- جوز- غُز- اغز- غزان- (افغانستان)-

تېربوزے:(تېر-بُو-زے)اسم- دَ کنډلو یو خاص قسم- یو قسم کنډون- (افغانستان)-

تېربه:(تېر-به/تې-رهٔ-به)اسم- واحد- مؤنث- مولی- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ مولی-

تېرببر:(تېر-ببر)صفت- (۱)وړاندې وروستو- تېروبېر- (۲)ټګی توری- چل ول-

تېرخړے:(تېر-خُ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مخ داغونه- (۲)دَ غوا مېښې دَ جیلب یوه حصه چې پهٔ مخ پرته وی- جمع تېرخړی-

تېرسو:(تېر-سو)اسم عدد- دري سوه- (متروک)-

تېرسونے:(تېر-سو-نے)اسم- جوټه- پس خورده- پاتې شوے خوراک- جمع تېرسونی-

تېرغمال:(تېر-غُ-مال)اسم- تېرغمل- تېرغمے- ظلم- زیاتے- (افغانستان)-

تېرغمل:(تېر-غُ-مَل)اسم- وګورئ تېرغمال-

تېرغمے:(تېر-غُ-مے)اسم- وګورئ تېرغمال-

تېرکی:(تېر-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ځنګل- ځنګله- (افغانستان)-

تېرکه:(تېر-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پنایی یا برید دېوال- تجیر- (۲)دَ روستاړی تړلو تسمه- جمع تېرکې- (افغانستان)-

تېرلک:(تېر-لک)اسم- واحد- مذکر- تېرکے- برچکے- بچوکے- پهٔ لټ کښې هغه وړوکے چخچے چې پکښې دَ روټی ټوکره ابښوے شی- جمع تېرلکونه-

تېرمتے:(تېر-مَ-تے)اسم- واحد- مذکر- زوړ اس- عمر خوړلے اُس- ټټو- یابو- جمع تېرمتی- (افغانستان)-

تېرنه:(تې-رهٔ-نه)اسم- (۱)بخښنه- معافی- عفو- (۲)ظلم- زیاتے- (افغانستان)-

تېرز:(تې-رُو)اسم صفت- ظالم- ظلم کونکے- غاصب- (پټه خزانه- افغانستان)-

تېرواتهٔ:(تېر-وا-تهٔ)اسم- تېروتنه- دوکه کېدنه- خطا کېدنه-

تېروبېر:(تې-رو-بېر)صفت- وګورئ تېرببر-

تېروتل:(تېر-و-تَل)مصدر- دوکه خوړل- خطا کېدل-

تېروتلے:(تېر-و-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تېروتلی- مؤنث

تېروتلې- وګورئ تېروتل-

تېروتن:(تېر-و-تن)حاصل مصدر- وګورئ تېرتول-

تېروتنګ:(تېر-و-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ تېرتول-

تېروتنه:(تېر-و-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېرتول-

تېروتونکے:(تېر-و-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېروتونکی- مؤنث تېروتونکې- وګورئ تېرتول-

تېروتے:(تېر-وهٔ-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- خطا شوے- تېروتلے- دوکه شوے- غلط شوے- جمع تېروتی- مؤنث تېروتې-

تېرورے:(تېر-و-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه سامان یا بار چې دَ کوچ کولو نه وړاندې بل پړاؤ ته لېږلے شي- جمع تېرورې-

تېرول:(تې-ر-وَل)مصدر متعدی- (۱)زغمل- پېڅل- برداشت کول- (۲)خوړل- (۳)دَ نر حېوان پهٔ ماده ختل- (۴)وخت اړول- (۵)تېرهٔ کول- (۲)بغېر لهٔ شحونده لهٔ حلقه بشکته کول-

تېرون:(تې-ر-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تېرول-

تېرون:(تې-رون)اسم- (۱)ګوذار- وار- (۲)ظلم- زیاتے-

تېرونګ:(تې-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تېرول-

تېرونه:(تې-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېرول-

تېرونے:(تې-رو-نے)اسم- واحد- مذکر- ملګرے- اشنا- زړهٔ ته نژدې- محبوب- جمع تېرونی- مؤنث تېرونې-

تېره بله:(تې-ره-بَ-له)اسم- واحد- مؤنث- دوکه- چلبازي- غېر یقینی صورت حال-

تېرهٔ توب:(تې-رهٔ-توب)اسم- (۱)تېرهٔ والے- تېزي- چُستي- چالاکي- (۲)هوښیاري- پوهه- (۲)تکړه توب- باتوري-

تېرهٔ والے:(تې-رهٔ-وا-لے)اسم- وګورئ تېرهٔ توب-

تېرېدل:(تې-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)تلل- خوارېدل- (۲)قربانېدل- خارېدل- (۳)دَ ماده حېوان دَ وار پهٔ وخت تاؤ سرېدل- (۴)زغملے کېدل- (۵)اوړېدل- (۲)بغېر لهٔ شخونده لهٔ حلقه بشکته کېدل-

تېرېدن:(تې-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تېرېدل-

تېرېدنګ:(تې-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تېرېدل-

تېرېدنه:(تې-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېرېدل-

تېرېدونکے:(تې-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېرېدونکی- مؤنث تېرېدونکې- وګورئ تېرېدل-

تېرېدونے:(تې-رې-دُو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېرېدونی- مؤنث تېرېدونې- وګورئ تېرېدل-

تېرېدهٔ:(تې-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ تېرېدل-

تېرېستل:(تې-رېس-تل)مصدر متعدی- وګورئ تېرابستل-

تېری:(تې-ری)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ یېنهې دَ لوبې پهٔ دوران کښې پهٔ منده کښې یو خوا بل خوا تاؤېدنه-

تېز:(تېز)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)تُند- چُست- چابک- چاخ- چالاک- (۲)هوښیار- پوه- (۳)تېرهٔ- (م- فارسی)-

تېزاب:(تې-زاب)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو ترش خوند لرونکے کیمیائی مرکب- یو قسم تېز عرق چې سرے پرې سوځی او دَ شین رنګي لټمسی کاغذ رنګ سور کوی-

تېزتېز:(تېز-تېز)اسم صفت- مذکر- (۱)شغاشغ- (۲)تېرهٔ تېرهٔ- (۳)جلت جلت- چست چست-

تېزرفتار:(تېز-رَف-تار)اسم صفت- تېز رفتار لرونکے- تکړه- چټک- چابک- چاخ- ګړندے-ژر ژر تلونکے- (م- فارسی)-

تېزغانه:(تېز-غا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اس دَ جلت تللو یا خغلولو دَ پاره جوړ چابک- یوه کروړه- (م- فارسی- تازیانه)-

تېزمزاج:(تېز-م-زاج)اسم صفت- سخت طبیعته- غصه ناک- قهرژن-

تېزندی:(تې-زن-دی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تېزندی- زندی- تېېندی- هغه پړے چې دَ چا دَ پانسی کولو دَ پاره چا ته ور پهٔ غاړه کولے شي- پانسی-

تېزوالے:(تېز-وا-لے)اسم- (۱)تېزي- تُندي- تېزي اختیارونه- (۲)غُصه کونه- (۳)تېرهٔ والے-

تېزول:(تې-ز-وَل)مصدر متعدی- (۱)جلتول- ژر ژر روانول- پهٔ منډه کول- تندول- پهٔ تروه (دروه) کول- (۲)تېرهٔ پلکی لرونکې دَ اُسپنې یا بل څهٔ څیز نه جوړه وسله یا آله پهٔ برجو وغېره تېرهٔ کول-

تېزون:(تې-ز-وَن)حاصل مصدر- وګورئ تېزول-

تېزونکے:(تې-ز-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېزونکی- مؤنث تېزونکې- وګورئ تېزول-

تېزونګ:(تې-ز-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تېزول-

تېزونه:(تې-ز-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېزول-

تېزه:(تې-زه)اسم صفت- تېزکی- هغه سبق چې پهٔ ټکو نه بلکې پهٔ خویه ښهٔ ونیلے کېږی- پهٔ رواني سره سبق وېنه- (افغانستان)-

تېزی:(تې-زی)اسم- (۱)جلدی- جلتی- (۲)غُصه- (۳)تېرهٔ والے-

تېزېدل:(تې-زې-دَل)مصدر لازم- (۱)جلتېدل- ژر ژر روانېدل- پهٔ منډه کېدل- (۲)دَ اُسپنې یا بل دهات نه دَ جوړې وسلې یا آلې دَ پلکی پهٔ برجو وغېره تېرېدل-

تېزېدن:(تې-زې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تېزېدل-

تېزېدنګ:(تې-زې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تېزېدل-

تېزېدنه:(تې-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېزېدل-

تېزېدونکے:(تې-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېزېدونکی- مؤنث تېزېدونکې- وګورئ تېزېدل-

تېزېدهٔ:(تې-زې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه-

وګورئ تېزېدل-

تېسه:(تې-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)په خرغ کښې تنګی- (۲)ګټه- (۳)زیاتوالے- (۴)تکی- (افغانستان)-

تېش:(تېش)اسم- واحد- مذکر- سسپار- د یوې په کُنده کښې لګېدلې هغه تېره اُسپنه چې زمکه پرې څیرلے شي-

تېش خولی:(تېش-خو-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه ټوپۍ چې په سر وُچته ولاړه وی- وُچته خولی- (افغانستان)-

تېشن:(تې-شن)صفت- تېسن- لوئ لوئ وېښته لرونکے-

تېشه:(تې-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ګلکاری هغه آله چې خښتې او کاڼی پرې ماتولے شي- (۲)د ترکاڼی هغه آله چې لرګی پرې توږلے شي- ترېشخ-

تېښت:(تېښت)اسم- تېښته- خغل- منډه- تاخت-

تېښته:(تېښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تېښت- جمع تېښتې-

تېغ ۱:(تېغ)اسم- واحد- مذکر- تېره څوکه یا څُله لرونکې وسله- (توره، چاړه، خنجر چاړهٔ وغېره)-

تېغ ۲:(تېغ)اسم- واحد- مذکر- تېغے- نوغے- تېغه- تېغنه- تازه ټوکېدلے بوټے- جمع تېغونه-

تېغ بندي:(تېغ-بن-دي)اسم- واحد- مؤنث- د تېغ یا ګولی اثر ختمولو د پاره لیکلے شوے تعویذ-

تېغ تېغ:(تېغ-تېغ)اسم صوت- تېک تېک- تکے تکے- په ځنو ماده حېواناتو د نر د ختلو د پاره د پارولو اواز-

تېغ رانی:(تېغ-را-نی)اسم- جنګ جګړه- توره چلونه- (م- فارسی)-

تېغړی:(تېغ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه ټوټه چې شلېدلی سېنډل یا څپلی ته اچولے شي-

تېغنه:(تې-غڼ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تېبخے- تبی- (۲)ککوړے- تیکوړے- د رېکاټی باجې رېکارډ- جمع تېغنې-

تېغون:(تې-غون)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپین باز- (۲- صفت)روڼ- چڼکېدونکے- ځلېدونکے-

تېغوهل:(تېغ-و-هل)مصدر متعدی- تېرول- مال کول-

تېغوهن:(تېغ-و-هن)حاصل مصدر- وګورئ تېغوهل-

تېغوهنګ:(تېغ-و-هنګ)حاصل مصدر- وګورئ تېغوهل-

تېغوهنه:(تېغ-و-هڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېغوهل-

تېغوهونکے:(تېغ-و-هون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېغوهونکی- مؤنث تېغوهونکې- وګورئ تېغوهل-

تېغه:(تې-غه)اسم- مؤنث- هغه خښته چې ګلکار يُ په بیم کښې په اړخ لګوی-

تېغه:(تې-غه)اسم- واحد- مؤنث- نوغے- وګورئ تېغ ۲-

تېک:(تېک)صفت- (۱)نېغ- وُچت- (۲)څرګند- بلنګ- ښکاره- جوت- (۲)د څاروو د خودلذتی عمل-

تېکول:(تې-ګه-ول)مصدر- په کوړو کښېنول لکه شاګرد چې څنګه استاد ته کښېني-

تېکون:(تې-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ تېکول-

تېکونکے:(تې-که-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تېکونکی- مؤنث تېکونکې- وګورئ تېکول-

تېکونګ:(تې-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ تېکول-

تېکونه:(تې-که-وڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تېکول-

تېکه:(تې-که)اسم صفت- (۱)څنګزن- راخوړند- (۲)تېک- په غرور کښې-

تېکه:(تې-که)اسم- واحد- مؤنث- تېکے- د توری یا چړې نیام- جمع تېکې-

تېکیر:(تې-کیر)اسم- (۱)په سر کښې سپړی او ریچې لټونه- (۲)د بُغض او کینې له کبله چا ته په بدو سترګو کتنه- (۳)تحقیق- څېړنه- لټون- (افغانستان)-

تېکے:(تې-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تېکه ۲- جمع تېکی-

تېل:(تېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)غوړ- هغه روغن چې د شړشمو یا نورو داسې څیزونو نه حاصلیږی- جمع تېلونه- (ش- هندی)-

تېلپکه:(تېل-په-که)اسم- واحد- مؤنث- د پښتنو یوه خاص قسم ټوپۍ- جمع تېلپکې-

تېلتک:(تېل-تک)اسم- واحد- مذکر- تولتک- تولتکه- برستن- نالی- نیالی- جمع تیلتکونه-

تېلو:(تې-لو)اسم- تی تر- تی ترونے- هغه کڅوړه چې د لنګو څاروو غلانځو ته اچولے شي- خېلانځ-

تېله:(تې-له)اسم- واحد- مؤنث- کڅوړه- بوجۍ- کوڼی- تېلی- (م- هندی)-

تېلی:(تې-لی)اسم- واحد- مذکر- د شړشمو او کُنځلو وغېره نه تېل وېستونکے- د کاڼی چلونکے-

تېلیتوب:(تې-لی-توب)اسم- د تېلو کار- د تېلی پېشه-

تېنکے:(تېن-کے)اسم- تیندږے- د پوزې پېزوانګ-

تېنګ:(تېنګ)اسم- تابوت- شخړه- د لرګی صندوق چې مړے پکښې ښخولے شي-

تېوزه:(تېو-زه)اسم- واحد- مؤنث- سمڅ- سپون غاړے- چپوره- ګاره- (افغانستان)-

تبیل:(تې-یل)مصدر- په تېلو یا غوړیو کښې سرهٔ کول-

تبیلے:(تې-یهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تبیلی- مؤنث تبیلې- وګورئ تبیل-

تبین:(تې-ین)حاصل مصدر- وګورئ تبیل-

تبینکے:(تې-ین-کے)اسم- واحد- مذکر- د پوزې هړوکے-

تبینګ:(تې-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ تبیل-

تبینه:(تې-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ تبیل-

تبینی:(تې-یهٔ-نی)اسم- لړ-مانړ- لرمانړ- پړپوس- اینه- زړهٔ او پښتورګے

وغېره-

تپینے:(تپ-یۀ-نے)اسم- واحد- مذکر- چنبې یا داسې بل څیز چې پۀ یو خل وریتې کړے شي- یو پور- یوه ګانړې- جمع تپیني- (افغانستان)-

تپیونکے:(تپ-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تپیونکي- مؤنث تپیونکې- وګورئ تپیل-

تپیي:(تپ-یي)اسم- واحد- مؤنث- داني- (افغانستان)-

تے:(تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ښځو او ماده څناورو د بدن هغه غړے چې پئ پکښې وي- سینه- (۲)د سړي پۀ سینه دزه هغه نښې چې پئ نۀ لري- جمع تي/تیونه-

ټ:(ټې)حرف- واحد- مؤنث- دَ پښتو او هندي دَ الف بې دَ پټې پينځم حرف چې دَ ابجد لۀ حسابه يې شمېر څلور سوه دے او چې "ط" وليکلے شي نو نهۀ (۹) حسابيږي- جمع ټېکانې-

ټاب:(ټابَ)اسم- واحد- مذکر- افسوس- ارمان- ټاپ- خفګان- (کول/کېدل مصدرونه)-

ټابۍ:(ټا-بۍ)اسم- مؤنث- هغه اوښه چې دوه کاله پس بچے راوړي-

ټاپ:(ټاپَ)اسم- واحد- مذکر- چجکے- څاله- څپر- چت- دَ تانګې دَ پاسه دَ ترپال چت- (م- انګريزي)-

ټاپ:(ټاپَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټاپه- مهر- نښه- نښانه- (۲)وګورئ ټاب- ترټاب- اسويلي- حسرت- ارمان- افسوس-

ټاپ ټيپ:(ټاپَ-ټيپَ)اسم صفت- مذکر- (۱)ټپ ټيپ- مانده- کمزورے- بوډا- زوړ- (۲)دار و مدار- (۳)ټيپ ټاپ- سينګار- ډول-

ټاپ دار:(ټاپَ-دارَ)اسم صفت- مذکر- ټاپېدار- ټاپه شوے- ټاپې ټاپې- چاپي- چاپه شوے-

ټاپرۍ:(ټاپَ-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دونکاچه- ډبه- مچان- ډبګۍ- دَ لرګو يوه وُچته دونکاچه يا لوړه ډبه شان چې خلق پرې لوښي لرګي يا منګي منګوټې ږدي-

ټاپرۍ:(ټاپَ-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- څپر- دَ وښو نه جوړه جونګړه- چوپړۍ- کېږدۍ- منډوګے- هغه چوپړۍ چې فصل ترې ساتلے شي- منا- مناګۍ-

ټاپل:(ټا-پَل)مصدر متعدي- (۱)ټاپه لګول- مهر لګول- نښه لګول- ټپل- (۲)څاروي خصي کول- ټپي کول- ټکول-

ټاپلے:(ټا-پۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- (۱)پۀ نښه شوے- ټاپه شوے- (۲)خصي شوے- ټپي شوے- ټکېدلے- جمع ټاپلي- مؤنث ټاپلې-

ټاپن:(ټا-پَن)اسم فاعل/صفت- (۱)مهر لګونکے- ټاپه لګونکے- چاپه لګونکے-

ټاپنځاې:(ټا-پَن-ځاې)اسم- واحد- مذکر- دَ چاپ ځاې- دَ ټاپ ځاې- چاپخانه- پرېس- جمع ټاپنځې- (افغانستان)-

ټاپو:(ټا-پُو)اسم- واحد- مذکر- (۱)وُچکۍ- وړه جزيره- دَ اُبو پۀ مينځ کښې وُچه- دَ خوړ يا سيند پۀ مينځ کښې هغه وُچه غُنډۍ چې اُبۀ ورختے نۀ شي- (۲)برج- ماڼۍ- جمع ټاپوګان/ټاپوان-

ټاپوړه:(ټا-پو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ جامو وينځلو تخته- شازه- (۲)خرخره- کراره- (۳)ټابوله- ګړيکه- انټوک- ډانګورې- ډانګوره- ټاپوړي- (۴)هغه لرګے چې دَ څناورو سوټې پرې راغنډوي- پوړه-

ټاپوړۍ:(ټا-پو-ړۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ډانګورې- ټوکان- دَ ترخ امسا- هغه امسا چې پۀ پښو معذوره خلق پرې ګرځي-

ټاپول:(ټا-په-وَل)مصدر- ټاپل- ټاپه لګول- مهر لګول- چاپه کول- ټپل-

ټاپولک:(ټا-پُو-لَک)اسم- واحد- مذکر- بال- پنډوس- غُنډسکه-

ټاپولے:(ټا-پُو-لے)اسم- واحد- مذکر- ډانګورې- ټاپوړۍ- انټوک- ډانګوره-

ټاپون:(ټا-په-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ټاپول-

ټاپونکے:(ټا-پَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ټاپونکي- مؤنث ټاپونکې- وګورئ ټاپول-

ټاپونګ:(ټا-پَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټاپول-

ټاپونه:(ټا-پَ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټاپول-

ټاپوزمه:(ټا-پُو-وَز-مه)اسم- (۱)جزيره نما- دَ ټاپو پۀ شان- دَ ټاپو غُنډۍ- دَ ټاپو پۀ رنګ- (۲)هغه وُچۀ زمکه چې درې طرف ته يې اُبۀ وي- (افغانستان)-

ټاپه:(ټا-پَه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چاپ شوې حکمنامه- (۲)مهر- خاپ- چاپ- نښه- ټاپ- (۳)داغ- تور- تهمت- رټه- لکه- (۴)دَ چاپ مشين- (۵)پۀ کپړه يا کاغذ دَ نښې لګولو مشين-

ټاپه رس:(ټا-په-رَس)اسم- واحد- مذکر- نمرپرست- نورپرست- کاپرګل- هغه ګل چې دَ تخم نه يې غوړي ايستلے کيږي- نمېر- دَ نمبر ګل- ګلِ نمېر-

ټاپې:(ټا-پې)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوستي- ملګرتيا- اشنائي- يارانه- (۲)موده- وخت- (۳)پټه صلاح مشوره- دَ پردې خبره- (۴)دَ ناروغتيا هغه سخت وخت چې يا مريض روغ شي يا ومري- (۵)سائي- پېشګي- بيانه- ټپي-

ټاپې:(ټا-پې)اسم- واحد- مذکر- (۱)مزل- فاصله- (۲)دَ قرض نېټه- قسطونه- (۳)باد و باران- جم جکړ- زول او باران-

ټاپې ټاپې:(ټا-پې- ټا-پې)اسم صفت- خاپ خاپ- ټکي ټکي- داغ داغ- خاپې خاپې- نښې نښې- برګ-

ټاپېدار:(ټا-پې-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چاپه شوے- پټېدار- (۲)وګورئ ټاپ دار-

ټاپېدل:(ټا-پې-دَل)مصدر لازم- چاپ کېدل- مهر کېدل- نښانه کېدل-

ټاپېدن:(ټا-پې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ټاپېدل-

ټاپېدنګ:(ټا-پې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټاپېدل-

ټاپېدنه:(ټا-پې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټاپېدل-

ټاپېدونکے:(ټا-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- چاپ کېدونکے- ټاپه کېدونکے- نښانه کېدونکے- جمع ټاپېدونکي- مؤنث ټاپېدونکې- وګورئ ټاپېدل-

ټاپېدۀ:(ټا-پې-دۀ)حاصل مصدر از دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ټاپېدل-

ټاپۍ:(ټا-پۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ غنمو دَ درمند خاصه نښه- (افغانستان)- (۲)پۀ ټوپۍ دَ وربښمو يا دَ تيلې ګل-

ټاپے:(ټا-پے)اسم- واحد- مذکر- (۱)مقام- مقرر ځاې- (۲)صفت/فاعل- ټاپه لګونکے- مهر لګونکے-

ټات:(ټاتَ)اسم- واحد- مذکر- غرور- زيار- اوغم- وګورئ ټاټ-

"ۍ" (څې-رَل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لي)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ټاټ:(ټاټ)اسم- واحد- مذکر- فخر- وياړ- غرور- لوئي- کبر- ټاټ-

ټاټ:(ټاټ)اسم صفت- واحد- مذکر- کوړ- راتاؤ-

ټاټ:(ټاټ)اسم- واحد- مذکر- جمع ټاټونه- وګورئ تراټ-

ټاټ:(ټاټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اهنګونو راغونډېدو مرکز- (۲)راګونه-
سرى نمائېش- (۳)له منجو يا سونړو نه جوړه پوزى يا صف- د سونړو نه
جوړه کپړه- موم جامه- ترپال- تپړ- خښے- ټغر- ګلم- پلاسى-

ټاټاره:(ټا-ټا-ره)اسم- مؤنث- وګورئ ټامبارى-

ټاټ باټ:(ټاټ-باټ)صفت- شان شوکت- نخرې- ټاټ پاټ- (م- هندى)-

ټاټ پاټ:(ټاټ-پاټ)صفت- وګورئ ټاټ باټ-

ټاټر:(ټا-ټر)اسم- واحد- مذکر- ټټر- خيګر- سينه-

ټاټسى:(ټا-ټه-سى)اسم- واحد- مؤنث- ټوقه- وشته- پرپرى- شتى-
(افغانستان)-

ټاټکه:(ټا-ټه-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرخېړے- ټاټوکه- يو بوټے چې
ژاوله ترې حاصلولے شى- (۲)وګورئ ارغوچ- (۳)د اکوړ په شان د خوراک
يو قسم مېوه-

ټاټکے:(ټاټ-کے)اسم- واحد- مذکر- تغارے- چابړے- وړوکے ټب- مفه
څادرى يا د اُسپنې غنډ او رغے شان لوښے چې مزدوران پکښې شګې او
سيمنټ مسترى ته خېژوى او جوړوى- جمع ټاټکى-

ټاټوالے:(ټاټ-وا-لے)اسم- (۱)د ټاټ سره متعلق- (۲)کوړوالے- په يو طرف
ځنګزن توب- ځنګزن والے-

ټاټوب:(ټا-ټوب)اسم- (۱)خاموشى- زغم- (۲)ګذران- ګوزراه- (مصدرونه
کول/نيول)-

ټاټوبه:(ټا-ټو-به)اسم- واحد- مؤنث- د استوګې ځاے- د وسېدلو ځاے-
جمع ټاټوبې-

ټاټوبے:(ټا-ټو-بے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټاټوبه- جمع ټاټوبى-

ټاټوبے:(ټا-ټو-بے)اسم صفت- وسېدونکے-

ټاټوسے:(ټا-ټو-سے)اسم- واحد- مذکر- ټاټوسى- د منى د بوټو د تخم
لوښے يا د کرلو کوغالے- جمع ټاټوسى-

ټاټوکه:(ټا-ټو-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټاټکه-

ټاټوکے:(ټا-ټو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)خرېړے- ټاټکے- (۲)يو قسم
وابنه چې د سپرلى په موسم کښى کيږى-

ټاټوکے:(ټا-ټو-کے)اسم- واحد- مذکر- د اکوړ په شان د خوراک يوه مېوه
چې مهوکے ې ډېر سخت وى-

ټاټوکے:(ټا-ټو-کے)اسم- واحد- مذکر- ټوکے- جمع ټاټوکى-

ټاټول:(ټا-ټ-ؤل)مصدر متعدى- (۱)په سر خېژول- ناز ورکول- (۲)ټاټ
ورکول- کړول-

ټاټون:(ټا-ټ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټاټول-

ټاټونکے:(ټا-ټ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- (۱)ټاټ ورکونکے- په سر
خېژونکے- نياز ورکونکے- (۲)کړونکے- جمع ټاټونکى- مؤنث ټاټونکې-
وګورئ ټاټول-

ټاټونګ:(ټا-ټ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټاټول-

ټاټونه:(ټا-ټ-ؤ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټاټول-

ټاټه:(ټا-ټه)اسم صفت- رسا- نېغ- سم- برابر- سيخ-

ټاټى:(ټا-ټى)اسم صفت- واحد- مذکر- فېشنى- مغروره- د ټاټ خاوند-

ټاټېدل:(ټا-ټې-دل)مصدر لازم- کړېدل- په يوه طرف راټيټېدل-

ټاټېدن:(ټا-ټې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټاټېدل-

ټاټېدنګ:(ټا-ټې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټاټېدل-

ټاټېدنه:(ټا-ټې-دؤ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټاټېدل-

ټاټېدونکے:(ټا-ټې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ټاټېدونکى-
مؤنث ټاټېدونکې- وګورئ ټاټېدل-

ټاټى:(ټا-ټى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ټالى- جُوټه- (۲)خانګو- (د
ماشومانو ژبه)- (۳)پانسى- (کول/کېدل مصدرونه)-

ټاخ:(ټاخ)اسم- تاخت- زغل- منډه- زغاښت-

ټاخ:(ټاخ)اسم صوت- ټخ- د پټاخې يا د کارتوس د خلاصېدو آواز- د ړز
آواز-

ټارپيډو:(ټار-پى-ډو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تارپيډو- (م- انګريزى)-

ټاره:(ټا-ره)اسم- واحد- مؤنث- کېږه- نس- جمع ټارې-

ټارى:(ټا-رى)اسم صفت- واحد- مذکر- فضول خبرې کونکے- ټرېدونکے-
ټرټر کونکے-

ټارى:(ټا-رى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)برج- اټارى- بالاخانه- سنګر-
(۲)د نښتر ښاخ- د ځېړى ښاخ-

ټاس:(ټاس)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو قسم کالے- يو قسم پسول- (۲)لويه
پکړى- پګ- (۳)د انګورو يو قسم- (۴)ايسک- شرط- پچه- قرعه-

ټاس:(ټاس)اسم صوت- د لوښى د ماتېدو آواز- ټس-

ټاسه:(ټا-سه)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ټوکے-

ټاغ:(ټاغ)اسم صفت- وګورئ ټاغ سترګے-

ټاغرے:(ټاغ-رے)اسم صفت- لنډے- کونډے- ګرډے-

ټاغ سترګے:(ټاغ-ستر-ګے)اسم صفت- چې سترګې ې بوټې راوتې وى-
ټاغے-

ټاغې:(ټا-غې)اسم صفت- برندې- بوټې- ټغې- (عام طور سره د سترګو د
صفت په طور استعماليږى)-

ټاغے:(ټا-غے)اسم صفت- وګورئ ټاغ سترګے-

ټاق:(ټاق)اسم صوت- ټق- د يو کاڼى د بل سره د جنګېدو آواز- د ټوپک
ړز- د کلک ځيز د ماتېدو آواز-

ټاقر:(ټا-قر)اسم- واحد- مذکر- عمرخوړلے- زوړ- ضعيف- بوډا- ټاکر-
مؤنث ټاقره- جمع مؤنث ټاقرې- جمع ټاقران-

زېر (ځ-بڼ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زبر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ه (ز-ړه)، ؤ (ډو-بې-دؤ)

ټاقې:(ټا-قې)اسم- غصه- بد مننه-

ټاقې:(ټا-قې)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ځپېړه-

ټاک:(ټاک)اسم- (۱)سرحد- حد- پوله- (۲)چونه- تېغ وهنه-

ټاک:(ټاک)اسم- واحد- مذکر- یوه ونه او د هغې مېوه-

ټاک:(ټاک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تریو- ترش- (۲)ټاکلے کړ-

ټاک ټال:(ټاک-ټال)اسم صفت- (۱)ټکنے- ترهور- (۲)اندېښمن- وسواسی-

ټاک ټوک:(ټاک-ټوک)اسم- د کور سامان- ټکه ټوکه- ټک ټوک- لوښی لرګی- اسباب-

ټاکر:(ټا-کر)اسم صفت- وګورئ ټاټر- مؤنث ټاکره-

ټاکر:(ټا-کر)اسم- واحد- مذکر- چیندرو- د ماشومانو یوه لوبه چې په اړی کوړی کولے شي- چندړی- چغی- چندری- چتي- جنت دوزخ-

ټاکل:(ټا-کل)مصدر متعدی- (۱)مقررول- په نښه کول- (۲)مریض ته ټکور ورکول-

ټاکلے:(ټا-کۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- مقرر شوے- غوره شوے- چوڼ شوے- په نښه شوے- جمع ټاکلی- مؤنث ټاکلې-

ټاکنده غرمه:(ټا-کن-ده-غر-مه)اسم- ټکنده غرمه- ټکنه غرمه- سره غرمه-

ټاکنه:(ټا-کۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټاکل-

ټاکو:(ټا-کو)اسم- واحد- مذکر- (۱)د خناورو یوه بیماری- (۲- صفت) داړې مار- شوکمار- ړاکو-

ټاکو:(ټا-کو)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټاټر-

ټاکور:(ټا-کور)اسم- ټکور- په خوړلن د زخم یا دردېدلی ځای ګرمونه-

ټاکونکے:(ټا-کون-کے)اسم فاعل- (۱)نښه لګونکے- مقرر کونکے- مقررونکے- په ګته کونکے- (۲)ټکور کونکے- ټکورونکے-

ټاکه:(ټا-که)متعلق فعل- ټکه- سمدستی-

ټاکی:(ټا-کی)اسم- د لاسونو پړقونه- چکچکې- تاړې- (مصدرونه وهل/کړل)-

ټاکی:(ټا-کی)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ماشومانو یو مرض چې په مخ ې دانې راوخیژی- (۲)داغونه- چاپونه-

ټاکی:(ټا-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)جوړ- پېوند- (۲)د کارتوس اخر ته لګېدلې د کتې ټکره- (۳)هغه کپړه چې صفائی پرې کولے شي- صافی-

ټاکی:(ټا-کی)اسم- واحد- مؤنث- د سترګو سورے-

ټاکی:(ټا-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)پټق- (۲)هغه دانه چې د وینې نه ړکه وی- (۳)ډېر موړ انسان یا حیوان- ادو بدو- (۴)د اُبو بانکی- (۵)پیوند- پینه- د چرم پیوند-

ټاکے:(ټا-کے)اسم- واحد- مذکر- ټیکه لګونکے- خال وهونکے- جمع ټاکی- (افغانستان)-

ټاکے:(ټا-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)څاڅکے- ټکے- قطره- (۲)ټوټه- پیوند- جوړ- (۳)داغ-

ټال:(ټال)اسم- واحد- مذکر- د چونګی محصول- ټېکس- (م- انګریزی)-

ټال:(ټال)اسم- واحد- مذکر- (۱)پینګه- هغه پړے چې بره اچولے شوے وی او څانګل پرې کیږی- (وهل/خوړل مصدرونه)- (۲)تاخیر- ځنډ- (کول مصدر)- (۳)د جولا تار- (۴)د پارسنګ ټیکځونه- (۵)د لرګو دوکان- (کول/اچول مصدرونه)-

ټال باش:(ټال-باش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ړال باش-

ټال مټال:(ټال-مه-ټال)اسم مرکب- وګورئ ټال مټول- (کول مصدر)-

ټال مټالول:(ټال-مه-ټا-له-ول)مصدر متعدی- (۱)ایسارول- ځنډول- (۲)انې بانې کول- حیلې حوالې کول-

ټال مټالونکے:(ټال-مه-ټا-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټال مټالول-

ټال مټالونه:(ټال-مه-ټا-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټال مټالول-

ټال مټالېدل:(ټال-مه-ټا-لې-دل)مصدر لازم- څوک په طمع کېدل- څوک په امید کېدل-

ټال مټالیدنه:(ټال-مه-ټا-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټال مټالېدل-

ټال مټالېدونکے:(ټال-مه-ټا-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټال مټال-

ټال مټالېدۀ:(ټال-مه-ټا-لې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ټال مټال-

ټال مټول:(ټال-م-ټول)اسم (مرکب)- ډیل- ځنډ- بانه- انه بانه- حیله حواله- هغه غر دا غر- یو غر بل غر-

ټالو:(ټا-لو)اسم- په لوړ شي په راخوړنده رسی یا څانګو کښې کښېناستنه او ټالونه خوړنه-

ټالول:(ټا-له-ول)مصدر متعدی- (۱)ټالول- خبره وړدول- بهانه کول- جول ورکول- ایسارول- (۲)ځنګول-

ټالولے:(ټا-له-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټالول-

ټالون:(ټا-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټالول-

ټالونکے:(ټا-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټالول-

ټالونګ:(ټا-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټالول-

ټالونه:(ټا-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټالول-

ټاله:(ټا-له)متعلق فعل- په یو ځای- همغاړه-

ټاله:(ټا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو ځای خرڅونه- د غلې په یو ځای امبار کونه- (۲)ګواره-

ټالېدل:(ټا-لې-دل)مصدر لازم- (۱)ځنګېدل- جوتې خوړل- (۲)ایسارېدل- اټالېدل- خبره وړدېدل-

ټالېدلے:(ټا-لې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- (۱)ځنګېدلے- جوتې خوړلے- (۲)ایسار شوے- اټال شوے- وړد شوے-

ټالېدن:(ټا-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټالېدل-

ټالېدنګ:(ټا-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټالېدل-

ټالېدنه:(ټا-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټالېدل-

ئ (ښی-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دېر) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ټالبدونکے:(ټا-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټالبدل-

ټالبدهٔ:(ټا-لې-دهٔ)حاصل مصدر- د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ټالبدل-

ټالي:(ټا-لي)اسم- واحد جمع- مؤنث- ډالی- مجره-

ټالي:(ټا-لي)اسم- واحد جمع- مؤنث- شوه- نباتاتي نوم ډلبرګياسيسو -(DALBERGIASISSO)

ټالي:(ټا-لي)اسم- واحد جمع- مؤنث- جونه- چکر- پير- پهٔ ټال د ځنګولو پهٔ وخت يو ټېله-

ټامباري:(ټام-با-ري)اسم- جمع- مؤنث- ژړا انګولا- پهٔ چغو چغو ژړا- ټاپاره- ټانټاره- ټانټال-

ټامباسي:(ټام-با-سي)اسم- جمع- غټې غټې دانې-

ټامبورے:(ټام-بو-رے)اسم- واحد- مذکر- د ټيم ډبے-

ټامبوسے:(ټام-بو-سے)اسم- واحد- مذکر- د واورې پوڅے- د واورې ګټ- ټوسان- جمع ټامبوسي-

ټامټه:(ټام-ټه)اسم- واحد- مؤنث- ټانټه- ټانډه- ټانګر- ټانګاري- د جوارو يا باجرې هغه برخه چې وړے ترې مات شوے وي- جمع ټامټې-

ټان:(ټان)اسم صوت- هغه آواز چې د مرئ نيولو نه پس پهٔ زور سره وځي-

ټانپاره:(ټان-پا-ره)اسم- مؤنث- وګورئ ټامباري- جمع ټانپارې-

ټانټال:(ټان-ټال)اسم- وګورئ ټامباري-

ټانټس:(ټان-ټس)اسم صفت- واحد- مذکر- کم عقل- بې عقله- بودلے- ناپوهه- شوده- ساده- لنډ فکرے- مؤنث ټانټسه- جمع ټانټسي-

ټانټو:(ټان-ټو)اسم- واحد- مذکر- هغه سړے چې خپل قرض ترې وغښتے شي يا چې هر څوک ترې خپل قرض (پور) وغواړي-

ټانټوبے:(ټان-ټو-بے)اسم- واحد- مذکر- ګڼه ګوڼه- غوربير- ښدار- زيات خلق- ګڼه- غالمغال- غورپش- غوريګ- (مصدر کول)- (افغانستان)-

ټانټور:(ټان-ټور)اسم- واحد- مذکر- ټانبزر- څپاکې چې نغرى کښې يو د بل د پاسه د اور بلولو د پاره کېښودے شي-

ټانټه:(ټان-ټه)اسم صفت- واحد- مذکر مؤنث- کمزورے- وچ- نرے-

ټانټه:(ټان-ټه)اسم- واحد- مؤنث- د جوارو بوټے چې وړے نهٔ لري- ټامټه- ټانډه- جمع ټانټې-

ټانچي:(ټان-چي)اسم- واحد جمع- مؤنث- د ډېرو اُبو جمع کولو د پاره د اُسپنې، ټين يا د سيمټو جوړ ځاے- ټانکي- ټېنکي- ټنکي-

ټاند:(ټاند)اسم صفت- خميز- کربدونکے-

ټانده:(ټان-ده)اسم- واحد- مؤنث- آغله- تانده- (افغانستان)-

ټاندور:(ټان-دور)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټانټور-

ټانډه:(ټان-ډه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټانټه (۲)- جمع ټانډې-

ټانډېر:(ټان-ډېر)اسم- واحد- مذکر- (۱)وير- ماتم- ژړا انګولا- (۲)غم رازی-

ټانک:(ټانک)اسم- واحد- مذکر- (۱)شوبله- ټېنکي- (۲)د تېلو د ذخيرې ځاے- (۳)ټېنګ- (افغانستان)-

ټانک:(ټا-نک)اسم- واحد- مذکر- مقوي- د طاقت دارو- (م- انګريزي)-

ټانکه:(ټان-که/ټانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټک- ګنډ- بخيه- (۲)پيوند- (مصدرونه- لګول/خلاصېدل/شلېدل)-

ټانګ:(ټانګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)اوازه- (۲)وچت غږ- (۳)وخت- موقع- (۴)د بزې يا ګډې د لنګېدو وخت- (۵)يوه غرنيزه مېوه- (۶)موسمي باران- (۷)پهٔ سمندر کښې د جهازونو (بېړو) د پاره جوړ شوے ځلے- (۸)ټاپو- د اُبو پهٔ منځ کښې وچوبه- وچکې- جزيره- (مصدرونه ختل/وراچول/ خطا کول)- (۹)د چرګو د کېښولو د پاره جوړ کړے ځاے- جمع ټانګونه- (۱۰)لويه ځانګه- ښاخ- وګورئ تانګ- (افغانستان)-

ټانګاري:(ټان-ګا-ري)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ ټامټه-

ټانګاوان:(ټانګ-ګه-وان)اسم صفت- واحد- مذکر- ټانګې وال- تانګې وال- کوچوان- (افغانستان)-

ټانګتوره:(ټانګ-تو-ره)اسم- واحد- مؤنث- داتوره- دالتوره- ډالتوره- يو زهرژن بوټے- نباتاتي نوم دتورا سټرا موريئم (DATURA STRAMORIUM)-

ټانګر:(ټان-ګر)اسم- جمع- مذکر- پارچوړ- هغه ټانټې چې د څارو د خوراک نه پاتې شوې وي- (۲)کنګر- لکړ- کنګړ- لکړې-

ټانګو:(ټان-ګو)اسم- واحد- مذکر- ناک- د ټېنګ پهٔ رنګ يوه مېوه- يو قسم ونه چې لرګے ئې سخت وي- ډانګې- ټانګې- تنګې- نباتاتي نوم پايئ رس کميونس- جمع ټانګوان-

ټانګه:(ټان-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټانګي-

ټانګه:(ټانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- تانګه- بګې- پهٔ اس يا اسپه راکښلے کېدونے د سورلۍ هغه ګاډے چې دوه پائې لري-

ټانګې وال:(ټانګ-ګې-وال)اسم صفت- واحد- مذکر- تانګې وال- د ټانګې چلونکے- کوچوان- جمع ټانګې والان-

ټانګي:(ټان-ګي)اسم- واحد جمع- مؤنث- بانګې- د يو بانس يا لرګي دواړو سرونو ته اچولے شوی ټيمان يا نور لوښي چې اُبهٔ پکښې راوړے شي-

ټانګي:(ټان-ګي)اسم- واحد جمع- مؤنث- تنګي- د ناشپاتې پهٔ شان يوه توره غرنيزه مېوه او د هغې ونه- د نباتاتي نوم د پاره وګورئ ټانګو-

ټانګے:(ټان-ګے)اسم- واحد- مذکر- زوچته مواره زمکه- جمع ټانګي-

ټانه:(ټا-نه)اسم- واحد- مؤنث- د ټونه تابع مهمل- کوډه- جادو- تعويذ- منتر- ټوټکا-

ټانه ټونه:(ټا-نه-ټو-نه)اسم- واحد- مؤنث- ټونه ټانه- ټونه- ټوټکه- کوډه- جادو- دم تعويذ- جمع ټانې ټونې-

ټاون:(ټاون/ټا-ون)اسم- واحد- مذکر- قصبه- د کلي نه لوئ او د ښارئې نه وړوکے ځاے- (م- انګريزي)-

ټاون کمېټي:(ټاوَن-کَ-مې-ټي)اسم- واحد- مؤنث- په پاکستان کښې د قصبې انتظامیه چې د اولس چوڼ کړي کونسلران يې چلوي- وړه ښاروالي- (م- انګریزي)-

ټاون هال:(ټاوَن-هال)اسم- واحد- مذکر- د کمېټي هغه هال چې پکښې غونډې او اجلاسونه کيږي- د ښاروالۍ هال- د ښاروالۍ تالار- (افغانستان)-

ټاه:(ټاه)اسم- واحد- مذکر- تلفظ- تکلم- خبرې کونه- (افغانستان)-

ټاه:(ټاه)اسم صوت- ډا- ډز- (د ماشومانو په ژبه)-

ټاني:(ټا-ني)اسم- واحد- مؤنث- نکټاني- هغه پټي چې انګریزي لباس سره په غاړه کښې اچولے شي- جمع ټايانې- (م- انګریزي)-

ټائيپ:(ټا-اپ/ټائپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټاپه- چاپه- نښه- (۲) ټائيپ رائيټر- د ټائپ رائيټر په ذريعه شوے ليک- (۳)قسم- شکل صورت- نمونه- (۴)توکم- کهول- درغوړ- (افغانستان)- (م- انګریزي)-

ټائپ رائټر:(ټا-اپ-راې-ټر)اسم- واحد- مذکر- هغه مشين چې ټائپ پرې کولے شي- د ليک مشين- جمع ټائپ رائټرونه-

ټائپسټ:(ټا-ئپ-پسټ)اسم فاعل- ټائپ کونکے سړے- جمع ټائپسټان- (م- انګریزي)-

ټائټل:(ټاې-ټل)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرخط- سرورق- د کتاب وړومبې پاڼه- (۲)د حکومت له خوا ورکړے شوے خطاب- (م- انګریزي)-

ټائر:(ټا-ار)اسم- واحد- مذکر- ټېر- د ربړ نه جوړه د پانې هغه حصه چې دننه پکښې ټيوب وي- جمع ټائرونه- (م- انګریزي)-

ټائم:(ټا-يم/ټا-ام/ټايم)اسم- واحد- مذکر- وخت- ټېم- جمع ټائمونه- (م- انګریزي)-

ټائم پيس:(ټا-يم-پيس)اسم- واحد- مذکر- هغه غټه ګړۍ چې په مېز يا تاخ کښې ايښودے شي- جمع ټائم پيسونه- (م- انګریزي)-

ټائم ټېبل:(ټا-يم-ټې-بل)اسم- واحد- مذکر- د وخت د تقسيم نقشه- (م- انګریزي)-

ټب:(ټب)اسم- واحد- مذکر- د ښانک په شان لوئې لوښے چې ډېرې اُبه پکښې جمع کولے شي او د جامو وينځلو د پاره هم استعماليږي- لوئې تغارے چې د لامبلو د پاره استعمالولے شي- طشت- لګن- ښانک- تش- د اُبو غټ لوښے- (م- انګریزي)-

ټبر:(ټه-بر)اسم- واحد- مذکر- (۱)خاندان- قبيله- خېلخانه- کورنی- (۲)ښخه- کورودانې- ارتينه- بېګم- (م- فارسي تبار)-

ټبردار:(ټه-بر-دار)صفت- مذکر- ټبر لرونکے-

ټبرداري:(ټه-بر-دا-ري)اسم- واحد- مذکر- د ټبردار کېدو حالت- خپلولي- عزيزولي- کورمه- خاندان- بچه پونګ- کورنی- ټام قبيله- خپل خپلوان- زياتې مټې-

ټبرګني:(ټه-بر-ګه-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ټبرداري-

ټبکے:(ټب-کے)اسم- واحد- مذکر- غار- ټوتے- ډوغله- مايه- کنده- غول- ټبلي- جمع ټبکي-

ټبلي:(ټب-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ټبکے-

ټبوټبوک:(ټ-بو-ټ-بوک)اسم- واحد- مذکر- غرنے بلبل- (افغانستان)-

ټپ:(ټپ)صفت- مذکر- (۱)مانده- کمزورے- خوار- ډنګر- نرے نروچکے- (۲)په سترګو ړوند- (۳)بند- (۴)بيخي- بالکل- (۵)کوني- مؤنث ټپه-

ټپ:(ټپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پرهر- زخم- داغ- (۲)ډېران- ټب- (۳)د کيرړې ونه- (۴)د حکومت د کال ګټه- ماليه، ټېکس وغېره- سرکاري آمدن- سرکاري مال- (۵)بدل- قصاص-

ټپ:(ټپ)اسم صوت- د کتاب د بندېدو آواز- د لاسونو د جنګېدو آواز- د وهلو آواز- د بره نه د څه څيز د راپرېوتو آواز- د ټپولو آواز-

ټپا:(ټ-پا)اسم صوت- ټپارے- ټپ ټوپ- کش و کړپ- د روټۍ د پخولو آواز- د قدمونو ټپهار- د چت نه د اُبو څڅېدو آواز- د لاسونو ټپولو يا پرټولو آواز-

ټپار:(ټه-پار)اسم صوت- مسلسل آواز- د ټپ ټپ آواز- وګورئ ټپا-

ټپاس:(ټ-پاس)د ټيپ او ټيس تابع مهمل-

ټپال:(ټ-پال)اسم- واحد- مذکر- (۱)پياده ګرځېدنه- زغل- منډه- چاق تلنه- (۲)بې مقصده ګرځېدنه- (۳)پېغام رسونه- خبر رسونه- (۴)د خرو يا کچرو د مزدورۍ د پاره د زغلولو کار- (مصدر وهل)- جمع ټپالونه-

ټپالوک:(ټ-پا-لوک)اسم صفت- مذکر- وګورئ ټپالي-

ټپالي:(ټه-پا-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- ټپالوک- (۱)ټپال کونکے- پېده تلونکے- (۲)خره چلونکے- خرکار- (۳)استاځے- (۴)کوشش کونکے- جمع ټپاليان-

ټپ پټ:(ټپ-پټ)اسم صفت- واحد/جمع- ټټ پټ- فضول- بې معنې- چټي- جزني- مزخرف- (افغانستان)-

ټپ ټپ:(ټپ-ټپ)اسم- واحد- مذکر- غصه- قهر- (افغانستان)-

ټپ ټپ:(ټپ-ټپ)اسم صوت- ټپا- د ډوډۍ پخولو آواز- د څه څيز د وهلو آواز- د مسلسل ټپولو آواز- د باران د ورېدو آواز- د څڅوبې اواز- وګورئ ټپا-

ټپ ټپانے:(ټپ-ټ-پا-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټپ ټپانے-

ټپ ټپانے:(ټپ-ټ-پا-نے)اسم- واحد- مذکر- ټپ ټپانے- ټپ ټپانے- ټپ ټپانے- د ماشومانو يو قسم لوبه- الاداد- جمع ټپ ټپانې-

ټپټپنے:(ټپ-ټ-په-نے)اسم- واحد- مذکر- ټکټکے- ډکډکے- موټرسائيکل-

ټپ ټوپ:(ټپ-ټوپ)اسم صفت- ټپ ټيپ- خوارخسته- بدحاله-

ټپ ټوپ:(ټپ-ټوپ)اسم صوت- ټپار- ټپارے- د باران د غټو څاڅکو ټپار-

ټپټور:(ټپ-ټور)اسم صفت- واحد- مذکر- کم نظر لرونکے- کم نظرے- مؤنث ټپټوره- (افغانستان)-

ټپټي کوتره:(ټ-په-ټي-کو-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بازيګره کوتره- لټ پټي کونتره- هغه کونتره چې بازي اړوي- (۲)د کونترو يو قسم چې

ټ (څې-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

رنګ ي سپين وي-

تپرا:(تَه-په-را)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ويرېدلے- ډرېدلے- ترهېدلے- (۲)احتياطي- خيال ساتونکے- (۳)کرکژن- نفرت کونکے- (۴)کمزورے- سست- (۵)زېزار- در په در- (افغانستان)-

تپرول:(تَه-په-ر-زَل)مصدر متعدی- بل څوک په تپرېدلو مجبورزل- په مزه مزه په تلو مجبورول- په ورو ورو کرخول-

تپرون:(تَه-په-ر-زَن)حاصل مصدر- وګورئ تپرول-

تپرونکے:(تَه-په-ر-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تپرونکي- مؤنث تپرونکې- وګورئ تپرول-

تپرونګ:(تَه-په-ر-زَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تپرول-

تپرونه:(تَه-په-ر-زَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ تپرول-

تپرېدل:(تَه-په-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)د ړوند په شان په ويره ويره قدم اخستل- په پام پام تلل- په ورو ورو تلل- (۲)مينه کول- زړه لګول- (په چا به ورسره خامخا راضي)-

تپرېدن:(تَه-په-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ تپرېدل-

تپرېدنګ:(تَه-په-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ تپرېدل-

تپرېدنه:(تَه-په-رې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ تپرېدل-

تپرېدونکے:(تَه-په-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع تپرېدونکي- مؤنث تپرېدونکې- وګورئ تپرېدل-

تپرېدهٔ:(تَه-په-رې-دَه)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ تپرېدل-

تپری:(تَپ-ری)اسم- واحد جمع- مؤنث- نری نيالی- نری برستن-

تپړ:(تَ-پړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کپړه- ټاټ- موم جامه- ترپال- (۲)هغه پړے چې د شولو کښې پرې تړی- (۳)د بوسو د کوری ترلو رسی-

تپړا:(تَپ-ړا)اسم- د کلال هغه آله چې د لوښی پرې هواروی- جمع تپړاکان-

تپړسو:(تَ-پړ-سو)اسم- واحد جمع- مذکر- يو قسم وابنهٔ چې د غنمو فصل کښې راټوکيږی-

تپس:(تَ-پَس)اسم- واحد- مذکر- تپزس- يو مردارخور مارغهٔ- لم خټ- جمع تپسان-

تپس:(تَ-پَس)اسم صفت- مذکر- سست- بې کاره- ناراست- بې خونده-

تپسارے:(تَپ-سا-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تپسورے- عاجز- متازه- ناتوانه- بې وسه- ذليل- خوار- سپک- (۲)سپېرهٔ- اسکيرلے- جمع تپساری- (افغانستان)-

تپسورے:(تَپ-سو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وګورئ تپسارے-

تپک:(تَ-پک)اسم- واحد- مذکر- سکون- قرار- راحت- جمع تپکونه-

تپک:(تَ-پک)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ تپرا- (۲)درز- زمکې له راخلاصونه- (۳)پټون وهنه-

تپک:(تَه-پک)اسم- واحد- مذکر- څکالے- د څناورو د څرمنې نه جوړ شوے بنېن يا بلاوز- جمع تپکان- (افغانستان)-

تپک:(تَ-پک)اسم- واحد- مذکر- لوټمار- لوټمال- ډيلی- جمع تپکونه-

تپکی:(تَپ-کی)اسم- واحد- مؤنث- د تاش په يوه لوبه طرب کښې پانه په زور ويشتنه چې ملګری ته دا تاثر ورکړے شی چې دے دې بيا هم دغه رنګ چال کړی- جمع تپکی تپکيانې-

تپکے:(تَپ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بال- پنډوس- (۲)د پنډوس يو قسم لوبه- (۲- صفت)ډېر کمزورے- سخت بيمار-

تپکے:(تَ-پ-کے)اسم تصغير- واحد- مذکر- تپکی- پوټکے- وړوکے توتنے- جمع تپکی-

تپکے:(تَپ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ورکوټے زخم- وړوکے پرهر- (۲)غار- سوړه- (۳)خندق- کنده- جمع تپکی-

تپل:(تَ-پَل)مصدر- وګورئ تاپل-

تپلن:(تَپ-لَن)اسم صفت- واحد- مذکر- تپلے- داغی- برګ مخے- تپن- قوتی مخے- کتی مخے- جمع تپلنی-

تپلے:(تَ-په-لے)اسم صفت- وګورئ تاپلے يا تپلن-

تپلے:(تَه-په-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تپلی- مؤنث تپلې- وګورئ تپل-

تپن:(تَ-پَن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وګورئ تپلن- (۲)حاصل مصدر- وګورئ تپل-

تپنا:(تَپ-نا)اسم- وګورئ تپرا-

تپنه:(تَ-په-نه)اسم صفت- بې کاره- وزګار- خشے- ليه-

تپنے:(تَ-په-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تپانے-

تپن:(تَ-پن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تپړ-

تپنا:(تَپ-نا)اسم صفت- واحد- مذکر- تپها- تپړا-

تپو:(تَ-پو)اسم- واحد- مذکر- تاپو- برج- اټاری- ټاری- شينګړی- جمع تپوکان-

تپوتپ:(تَ-پو-تَپ)اسم صوت- وګورئ تپار- (افغانستان)-

تپوږ:(تَ-پوږ)اسم- واحد- مذکر- د پېره ساتونکيو د ناستې ځاې- جمع تپوری-

تپوسی:(تَ-پو-سی)اسم- واحد جمع- مؤنث- د پومبی غوټی- غوزه-

تپوسی:(تَ-پو-سی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)يو قسم کونتره- (۲)د چرکوړيو يو مرض-

تپوک:(تَ-پوک)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوستين- وګورئ تپک- (۲)تماچه- (۳)څاپېره- چپلاخه- څپېړه- جمع تپوکان-

تپول:(تَ-په-زَل)مصدر متعدی- (۱)شاباسے ورکول- (۲)لمسول-

تپول:(تَ-پ-وَل)مصدر متعدی- بندول- تپ کول- (د چوند يا سوری)-

تپول:(تَ-پ-وَل)مصدر- تپ ورکول- کوزار ورکول- وهل- ډب ورکول-

تپولے:(تَ-پ-وَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع تپولی- مؤنث تپولې-

وګورئ ټپول-

ټپون:(ټَ-پَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپون:(ټَ-پَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپون:(ټَ-پَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپونکے:(ټَ-پَ-وَون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټپول-

ټپونکے:(ټَ-پَ-وَون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټپول-

ټپونکے:(ټَ-پَ-وَون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټپول-

ټپونګ:(ټَ-پَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپونګ:(ټَ-پَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپونګ:(ټَ-پَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپونه:(ټَ-پَ-وَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپونه:(ټَ-پَ-وَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپونه:(ټَ-پَ-وَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپول-

ټپونے:(ټه-پو-نے)اسم- واحد- مذکر- ټاپه- مُهر- چاپه- هغه ټپونے چې دَ لرګی نه جوړ وی، توری پکښې کنستی شوی وی او دَ هغې په ذریعه په درمندونو کښې په رشو او دَ غلو په ذخیرو وغیره نښې لګولے شی- جمع ټپونی-

ټپه:(ټَ-په)اسمِ- واحد- مؤنث- (۱)الندۍ- دَ پښتو دَ اولسی شاعری یو صنف چې وړومبۍ مصرعه يې نهه سېلابه او دوېمه مصرعه يې دیارلس سېلابه وی- (۲)دریچه- کړکۍ- (۳)چاپ- مهر- نښه- (افغانستان)- (۴)کرامت- (افغانستان)- (۵)رقعه- یاداشت- (افغانستان)- (۶)پټۍ- دَ تاش پاڼې- (افغانستان)- (۷)بیانه- (افغانستان)- جمع ټپې- (مصدر کؤل/وئیل)-

ټپه ټغره:(ټَ-پَ-ټَ-غَ-ره)اسمِ صفت- مرکب- غریبی- ډېره نېستی- بې وسی- خواری-

ټپه مار:(ټَ-په-مار)اسمِ صفت/فاعل- واحد- مذکر- ټپې کونکے- مجلسی- میلسی-

ټپهار:(ټَپ-هار)اسمِ صوت- وګورئ ټپار-

ټپی:(ټَ-پی)اسم- واحد- مذکر- زخمی- ژوبل- جمع ټپیان- (مصدر کؤل/کېدل)-

ټپی مخے:(ټه-پی-مه-خے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټپلن-

ټپیسی:(ټَ-پی-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ نڅې سر-

ټپین:(ټَ-پین)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ټکی ټکی- ټپلے- ټپل مخے- داغدار- ننکو وهلے- وګورئ ټپلن-

ټپۍ:(ټَ-پۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تاپی- څپیاکه- غوشویه- (۲)ټپه- بیانه- سائی- پیشګی-

ټپے:(ټَ-پے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ورکوټے او نرے مار چې په مېږو کښې دَ غوشیانو دَ لاندې پروت وی-

ټپے:(ټَ-پے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ جوړونو درد- دَ پښو باد نیونه- (۲)په قمیص دَ کشیدې کار- (۳)قدرتی خال-

ټټ:(ټَټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټرټ- ترټ- بکواس- فضول خبره- (۲)ټیز- باد- (۳)کش- چوڼ- جمع ټټونه- (افغانستان)-

ټټا:(ټهٔ-تا)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ټرټو- ټټو- کړتو-

ټټا:(ټهٔ-تا)اسم- وګورئ ټټېدل-

ټټار:(ټَ-تار)اسم- (۱)چټی او بې معنې خبرې- فضول خبرې- ټرار- (۲)پرله پسې ټیزونه-

ټټ پټ:(ټَټ-پَټ)اسم- واحد- مذکر- ټال مټول- انې بانې-

ټټ پټ:(ټَټ-پَټ)اسمِ صفت- حقیر- سپک-

ټټ ټټ:(ټَټ-ټَټ)اسمِ صوت- ټټه- ټرټه- ټرټر- ټرار- ټرتار- وګورئ ټټ-

ټټ ټوټ:(ټَټ-ټوټ)اسم- ټټه- ټټار- ټرتار- عبث او بې ځایه ټرټه-

ټټن:(ټهٔ-ټن)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر- وګورئ ټټو- مؤنث ټټنه-

ټټنکه:(ټَ-تن-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم چرچڼه- جمع ټټنکې- (افغانستان)-

ټټو:(ټهٔ-ټو)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بکواسی- اپلتی- کړتو- ېوزن- دړن-

ټټول:(ټهٔ-ته-وَل)مصدرِ متعدی- دَ چا نه عبث خبرې ایستل- څوک په اپلتو یا ګډو وډو سر کؤل- فضول غږؤل-

ټټون:(ټهٔ-ته-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټټول-

ټټونکے:(ټهٔ-ته-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټټول-

ټټونګ:(ټهٔ-ته-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټټول-

ټټونه:(ټهٔ-ته-وَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټټول-

ټټهار:(ټَټ-هار)اسمِ صوت- ټټار- ټرار- ټرهار-

ټټې پټې:(ټه-ټې-پهٔ-ټې)اسم- جمع- مؤنث- فضول خبرې- بکواس- ټټ پټ-

ټټېدل:(ټهٔ-ټې-دَل)مصدرِ لازم- ټرټېدل- ټرېدل- فضول غړېدل- ټټ ټټ کؤل- بکواس کؤل-

ټټېدنګ:(ټهٔ-ټې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټټېدل-

ټټېدنه:(ټهٔ-ټې-دَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټټېدل-

ټټېدونکے:(ټهٔ-ټې-دَون-کے)اسم- فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټټېدل-

ټټېدهٔ:(ټهٔ-ټې-دَهٔ)حاصلِ مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ټټېدل-

ټټے:(ټَ-ټے)اسمِ صفت- وګورئ ټټو-

ټځ:(ټَځ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کبر- لوئی- غرور- (۲)غورې طمعې- لاپې شاپې- (افغانستان)- (۳)مس- تانبه-

ټځ:(ټَځ)صفت- (۱)ټیټ- کوږ- (۲)بې وسه- غریب- بې یار و مددګار-

ټټار:(ټَ-ټار)اسمِ صوت- واحد- مذکر- (۱)وګورئ ټټار- (۲- اسمِ صفت)وګورئ ټټاری-

ټټاری:(ټَ-ټا-ری)اسمِ- واحد- مذکر- بازاری- هغه څوک چې دَ پښتونولۍ نه خبر نهٔ وی-

ی" (ځی-رل)، ي"(مې-ره-وَل)، ئ"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ټټاري:(ټَ-ټا-رِي)اسم- جمع- مؤنث- شور- فرياد- زوږ- (افغانستان)-

ټټارے:(ټ-ټا-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټارے-

ټټارے:(ټَ-ټا-رے)اسم- واحد- مذکر- مس کر- لوښي جوړونکے-

ټټال:(ټَ-ټال)اسم- واحد- مذکر- ټيټال- خوشامده-

ټټازنګ:(ټَ-ټا-زنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- لاپو- لاپې کونکے-

ټټاوڼ:(ټَ-ټا-وَڼ)اسم صفت- واحد- مذکر- دوړې مار- بکواسی- مؤنث ټټاونه-

ټټ پرت:(ټَټ-پرَت)اسم- وګورئ ټت پت-

ټټ ټټ:(ټَټ-ټَټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټت ټت-

ټټخارے:(ټَټ-خا-رے)اسم- (۱)دَ خر د شرلو يا چاخولو دَ پاره پهٔ خلهٔ آواز- (۲)دَ ګتو د بندونو نه ټکونه وکښنه-

ټټخه:(ټَ-ټه-خه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټټر- جمع ټټخې-

ټټر:(ټَ-ټَر)اسم- واحد- مذکر- سينه- ټټخه- جمع ټټرونه- (ايښودل/سړول/وهل/يخول وغيره مصدرونه)-

ټټرى:(ټَټ-رى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- صدرى- نيم تنى- جاکټ- واسکټ- (افغانستان)-

ټټرے:(ټَټ-رے)اسم- واحد- مذکر- سينه بند-

ټټرے:(ټَ-ټه-رے)اسم صفت- لاف زن- لاپو- لاپک- (افغانستان)-

ټټک:(ټَ-ټک)اسم- واحد- مذکر- ټکټکے- د بيلچې يا يوم د خلې د پاسه پهٔ لاسکى کښې د پښې د ايښودلو او زور ورکولو هوار لرګے-

ټټکه:(ټَ-ټهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- د ټټو مؤنث-

ټټکے:(ټه-ټه-کے)اسم- واحد- مذکر- ورکے ټټو- دَ اسپې بچے-

ټټڼ:(ټَ-ټڼ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټټو-

ټټنګ:(ټَ-ټنګ)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)نایاب- (۲)خالى لاس- تش لاس- نيستى- مصيبت-

ټټنګ:(ټَ-ټنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)صحره- بيابان- (۲)وېره- (۳)تادى-

ټټنګا:(ټَ-ټن-ګا)اسم- واحد- مؤنث- ټيغکه- يو قسم مرغى- (افغانستان)-

ټټنګه:(ټَ-ټنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- تکليف- مصيبت- بلا- نايابه-

ټټو:(ټَ-ټو)اسم- واحد- مذکر- وړوکے اس- يابو- ټيټ شان اس- جمع ټټوان/ټټوګان-

ټټوبه:(ټَ-ټو-به)اسم- واحد- مؤنث- خندا- ټوقه- پچموزه- ملنده-

ټټوسى:(ټَ-ټو-سى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ يو بوټى تخم-

ټټوسے:(ټَ-ټو-سے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ چنې کونګرې- (۲)غنډوسکے-

ټټوغے:(ټه-ټو-غے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټارے/ټټارے-

ټټوکے:(ټَ-ټو-کے)اسم تصغير- واحد- مذکر- وړوکے ټټو- وړوکے اس- مانده او کمزورے اس-

ټټوه:(ټَ-ټهٔ-وه)اسم- واحد- مؤنث- د ټټو مؤنث- جمع ټټوې-

ټټيرے:(ټَ-ټي-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټټارے/ټيټارے-

ټټيغه:(ټَ-ټي-غه)اسم- واحد- مؤنث- دَ تور، سپين او شين رنګ يو مارغهٔ چې د مرز نه غټ وى او د ټي ټيان ټي ټيان آواز کوى-

ټټيوټ:(ټَ-ټي-وټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټټارے-

ټټى:(ټَ-ټى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ لويو بولو کولو ځاىْ- لېټرين- (۲)دَ قافلې د پاتې کېدو ځاى- سراى- (۳)بولې- بکې متيازې- غل- (۴)هغه پرده چې د لرګو، کهيو او غنو ازغو نه جوړولے شي-

ټټے:(ټَ-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- بکواسي- فضول خبرې کونکے- پوچ ګو-

ټچ:(ټچ)اسم- واحد- مذکر- لمس- لاس لګونه- ګتې وروړنه- (مصدرونه کول/کېدل)- (م- انګريزى)-

ټچ:(ټچ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حقير- کم- معمولى- بې قيمته- پربوتے- سپک- (۲- اسم)قوت- زور- طاقت- جمع ټچونه- (افغانستان)-

ټچ:(ټچ)اسم صوت- دَ پوکښې د چاودلو آواز- دَ پټاخې دَ پوچ کېدو آواز-

ټچ بټڼ:(ټچ-بَ-ټڼ)اسم- واحد- مؤنث- ټک بټڼ- يو قسم بټنې چې پهٔ قميص لګولے شي او پهٔ زور سره يو بل سره نښلولے شي- جمع ټچ بټڼې-

ټچ سسټم:(ټچ-سس-ټم)اسم- واحد- مذکر- دَ ټائپ کولو هغه چل چې ټائپسټ کې بورډ ته ګورى او ټائپ کوى-

ټخ:(ټخ)اسم صوت- دَ ټخې کولو آواز- هغه آواز چې ټخے ترې جوړيږى- لهٔ سينې نه د سا دَ تکليف سره راوتونکے آواز-

ټخا:(ټَ-خا)اسم- مسلسل ټخے-

ټخ ټخ:(ټخ-ټخ)اسم صوت- پرله پسې ټخے- ډېر ټخېدنه-

ټخ توخ:(ټخ-توخ)اسم صوت- (۱)دَ ټخې مسلسل آواز- اخ توخ- (۲)ږز ږوز- ټس ټوس-

ټخر:(ټَ-خر)اسم- واحد- مذکر- جامې- توکے- جمع ټخرونه-

ټخل:(ټَ-خل)مصدر- د سينې نه د سا دَ تکليف پهٔ نتيجه کښې آواز وکښل-

ټخله:(ټَ-خهٔ-له)اسم- ټخے-

ټخله:(ټَ-خهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- توخلې- هغه ټوپى چې غوړونه هم پکښې پټ وى- خولى- دَ غوړونو خولى- ټخلى- جمع ټخلې-

ټخلى:(ټَ-خهٔ-لى)اسم- واحد- مؤنث- توکله- کنځه- کوچغول-

ټخلې:(ټَ-خهٔ-لې)اسم- مؤنث- وګورئ ټخے-

ټخلى:(ټَ-خَ-لى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ټخله ۲-

ټخ مخ:(ټخ-مخ)اسم صفت- مذکر- ټس نس- خور ورر- پرېشان- ګډوډ-

ټخنکے:(ټَ-خن-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- مائل- شوقى- راغب-

ټخول:(ټَ-خَ-ول)مصدر متعدى- (۱)پهٔ زور لهٔ چا نه ټخې وېستل- (۲)لهٔ چا نه راز معلومول- لهٔ چا نه پهٔ چل ېپسې بودول-

ټخونکے:(ټَ-خه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټخول-

ټخونه:(ټَ-خَ-وڼه-نه)حاصل مصدر- (۱)وګورئ ټخول- (۲)دَ ګتو نه ټکونه ايستل-

ټخهار :(ټَخ-هار)اسم صوت- د ټخې مسلسل اواز-

ټخېدل:(ټَ-خې-دل)مصدر لازم- ټخې کول-

ټخېدلے:(ټَ-خې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټخېدل-

ټخېدن:(ټَ-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټخېدل-

ټخېدنګ:(ټَ-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټخېدل-

ټخېدنه:(ټَ-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټخېدل-

ټخېدونکے:(ټَ-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټخېدل-

ټخېدهٔ:(ټَ-خې-دهٔ)حاصل مصدر- د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ټخېدل-

ټخے:(ټَ-خے)اسم- واحد- مذکر- ټخ- کنګ- هغه آواز چې سينې نه د خراشکي رابيلولو پهٔ وخت وځي- د مرئ خارښت-

ټر:(ټَر)اسم صوت- (۱)د کولمو د بادو د زور آواز- (۲)د تېز آواز- د چيندخو آواز- ټرا- (۳)چا پورې د خندا کولو پهٔ وخت ادا کېدونکے آواز-

ټر:(ټَر)اسم- واحد- مذکر- عبث خبرې- بکواس-

ټرا:(ټَهٔ-را)اسم صوت- وګورئ ټر-

ټرا:(ټَ-را)اسم- واحد- مؤنث- ديسي شراب- جمع ټرې- (څښل وهل مصدرونه)-

ټراټه:(ټَرا-ټه)اسم- واحد- مؤنث- چيرانګه- چيره- جمع ټراټې-

ټرافي:(ټَرا-في)اسم- واحد- مؤنث- انعام- د لوبو پهٔ مقابلو کښې وړکېدونکے لوئ انعام- (اصل کښې هغه انعام چې د پخوانيو جنګونو د مال غنيمت پهٔ طور به ئې نمائش کېدو)- جمع ټرافيانې- (ش- انګريزي، فرانسيسي، يوناني)-

ټراک:(ټَراک)اسم- واحد- مذکر- يوه وړه مرغۍ- چتے- چترکے-

ټرالي:(ټَرا-لي)اسم- واحد- مؤنث- وړکوټے ګاډے- هغه ګاډے چې ټرېکټر پسې تړلے شي او راکښے شي- (م- انګريزي)-

ټرام:(ټَرام)اسم- واحد- مذکر- ټربس- پهٔ بجلي چلېدونکے ګاډے چې پهٔ پاټلۍ چليږي- (م- انګريزي)-

ټرامبون:(ټرام-بون)اسم- مذکر- د موسيقۍ يوه آله-

ټراموے:(ټرام-وے)اسم- واحد- مذکر- د اُسپنې د پاټلو سړک چې ټرام پرې چليږي- (م- انګريزي)-

ټران:(ټَران)اسم صوت- (۱)ټران ټران- ټرار- د موټرو او نورو ګاډو غرغور- (۲)ټرن- تيزن-

ټرانسسټر:(ټَران-سس-ټر)اسم- واحد- مذکر- ټرانزسټر- هغه رېډيو چې پهٔ بېټرۍ چليږي- د مسالې رېډيو- (م- انګريزي)-

ټرانسپورټ:(ټَرانس-پورټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سامان د يو ځائې نه بل ځائې ته استونه- (۲)لارۍ، ګاډې، موټرې چې سورلۍ او سامان يو ځوا بل خوا اوړي راوړي- (م- انګريزي)-

ټرانسپورټر:(ټَرانس-پور-ټر)اسم- واحد- مذکر- د ټرانسپورټ مالک- د ګاډو څښتن- هغه سړے چې د لاريو بسونو ملکيت کښې ساتل ئې پېشه وي- (م- انګريزي)-

ټرانسفارمر:(ټَرانس-فار-مر)اسم- واحد- مذکر- د بجلۍ هغه مشين چې د بجلۍ طاقت متوازن ساتي- (م- انګريزي)-

ټرانسفر:(ټَرانس-فر)اسم- واحد- مذکر- بدلي- تبادله- تبديلي- (م- انګريزي)-

ټرانس ميټر:(ټَرانس-مي-ټر)اسم- واحد- مذکر- هغه مشين چې بې د بجلۍ او د هوا د چپو نه آواز د يو ځائې نه بل ځائې ته رسوي- (م- انګريزي)-

ټراوو:(ټَهٔ-را-وو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټېزن- ټرن- (۲)فضول- بکواسي- ټرو- پوچ خلے-

ټرائي:(ټَرا-ئي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوشش- (۲)د ټرائېورانو نه د ډرائېونګ امتحان اخستنه- (م- انګريزي)-

ټرائيسکل:(ټَرا-ئي-سي-کل)اسم- واحد- مذکر- د درېو پايو سائيکل- (م- انګريزي)-

ټربائين:(ټر-با-ين)اسم- واحد- مذکر- هغه څرخ چې د اُبو پهٔ ذريعه چورلي او بجلي پيدا کوي- (م- انګريزي)-

ټربائين سسټم:(ټر-با-ين-سس-ټم)اسم- واحد- مذکر- د ټربائين پهٔ ذريعه د بجلۍ پيدا کولو طريقه- (م- انګريزي)-

ټرپر:(ټر-پر)اسم- واحد- مذکر- عبث خبرې- پوچې خبرې- ټرټر- وګورئ ټټ پټ-

ټرټ:(ټرټ)اسم صوت- ټر- د تېز آواز-

ټرټارا:(ټرهٔ-ټا-را)اسم- واحد- مؤنث- بې غمي- خوشحالي- مزې- چرت- جمع ټرټارې-

ټرټ پرټ:(ټرټ-پرټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټټ پرټ-

ټرټهار:(ټرټ-هار)اسم صوت- پهٔ يو مخ د تېزونو آواز- ټرهار- ټرار-

ټرټهار:(ټرټ-هار)اسم- جمع- مذکر- فضول خبرې- پوچې خبرې- عبث غږېدنه-

ټرټر:(ټر-ټر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټر-

ټرټل:(ټر-ټل)مصدر متعدي- رټل- داړل- چخول- رټل کوټل-

ټرړے:(ټر-ړے)اسم- واحد- مذکر- يو مارغهٔ چې د شپې ځان له پښې ونې سره ځوړند کړي او حق حق آواز کوي-

ټرخاول:(ټر-خا-ول)مصدر متعدي- ځان خلاصول- انې بانې کول- ځنډول-

ټرخاولے:(ټر-خا-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټرخاول-

ټرخاون:(ټر-خا-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټرخاول-

ټرخاونکے:(ټر-خا-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټرخاول-

ټرخاونه:(ټر-خا-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرخاول-

ټرسټ:(ټرسټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)اعتبار- باور- (۲)د ټرسټ ايکټ د لاندې د خلقو د خير سېګړې د پاره جوړه وقف اداره-

ئ (خې-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ټرسټي:(ټرس-ټي)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ ټرسټ وقف غړے-

ټرکڼ:(ټر-کڼ)اسم صفت- واحد- مذکر- مؤنث ټرکڼه- بړپه- بې زړۀ- وېرندونکے- بېرندوکے- بې غېرته- ایرندوک- ټرن- هغه څوک چې لۀ هر څۀ ویرېږی-

ټرماټر:(ټر-ما-ټر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټماټر-

ټرمکا:(ټرم-کا)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترمکا- ترمکیا- دَ أبو چنکاؤ کونه- (۲)پېه کونه- أبۀ کونه-

ټرن:(ټۀ-رن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټرو- ټیزن- (۲)وېرېدونکے- ډرن- مؤنث ټرنه-

ټرنک:(ټرنک)اسم- واحد- مذکر- دَ اسپنې صندوق- بکس-

ټرنی:(ټر-نی)اسم- واحد- مذکر- چونکے- محصول- ګات-

ټرو:(ټۀ-رو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټر ټر کونکے- کړتو- قړتو- (۲)ټرن- ډرن- ټیزن- بکواسی-

ټرول:(ټه-ر-ول)مصدر متعدی- (۱)فضول غړول- پۀ پوچو خبرو لګیا کؤل-ټټول- (۲)موټر یا بل ګاډے ټرول- یا ترې دَ ټرټر آواز ایستل-

ټرول:(ټۀ-ر-ول)مصدر متعدی- (۱)چا سره بد فعلی کؤل- غول- (۲)پۀ دستونو کؤل-

ټرولے:(ټه-ر-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټرول ۱-

ټرولے:(ټۀ-ر-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټرول (۲)-

ټرون:(ټه-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټرول ۱-

ټرون:(ټۀ-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټرول ۲-

ټرونکے:(ټه-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټرول ۱-

ټرونکے:(ټۀ-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټرول ۲-

ټرونه:(ټه-ر-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرول ۱-

ټرونه:(ټۀ-ر-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرول ۲-

ټره:(ټ-ره)اسم- واحد- مؤنث- چرت- قره- قوزه- جمع ټرې-

ټره:(ټ-ره)اسم- واحد- مؤنث- دیسي شراب- ټرا- جمع ټرې-

ټره ټره:(ټۀ-ره-ټۀ-ره)اسم- مؤنث- ټرتار- ټرټېدنه- اخوا دېخوا وېنا- ټرته ټرته- عبث وېنا- فضول خبرې- ټرټر- (مصدر کؤل)-

ټرمار:(ټۀ-ره-مار)اسم صوت- وګورئ ټرتهار-

ټرېټر:(ټرے-ټر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټرېکټر-

ټرېټي:(ټری-ټی)اسم- واحد- مذکر- معاهده- لوظنامه- (م- انګریزی)-

ټرېدل:(ټۀ-رې-دل)مصدر لازم- (۱)فضول خبرې کؤل- ټرټر کؤل- (۲)دَ چیندخو آواز کول- (۳)پۀ دستونو کېدل- نس بهېدل-

ټرېدل:(ټ-رې-دل)مصدر لازم- پۀ مزه مزه تلل-

ټرېدلے:(ټۀ-رې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- لۀ "ټرېدل" اسم مفعول- پۀ دستونو تلے-

ټرېدلے:(ټ-رې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدن:(ټۀ-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدن:(ټ-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدنګ:(ټۀ-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدنګ:(ټ-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدنه:(ټۀ-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدنه:(ټ-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدونکے:(ټۀ-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدونکے:(ټ-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټرېدل-

ټرېدۀ:(ټۀ-رې-دۀ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ټرېدل-

ټرېدۀ:(ټ-رې-دۀ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ټرېدل-

ټرېډ:(ټرېډ)اسم- واحد- مذکر- تجارت- سوداګری- (م- انګریزی)-

ټرېډمارک:(ټرېډ-مارک)اسم- واحد- مذکر- دَ تجارت یا دَ صنعت دَ پاره څۀ خاص نښه مقررونه- تجارتی نښه- (م- انګریزی)-

ټرېسر:(ټرے-سر)اسم- واحد- مذکر- هغه څوک چې نقشې جوړوی- ټریسنګ کؤنکے-

ټرېفک:(ټرے-فک)اسم- واحد- مذکر- پۀ سړک دَ سورلو او ګاډو چلند- ترافیک- (افغانستان)- (م- انګریزی)-

ټرېکټر:(ټرېک-ټر)اسم- واحد- مذکر- ټرېټر- هغه مشینی ګاډے چې زمکې پرې اړوَلے شی او دَ کروندې سره متعلق کار پرې کؤلے شی- (م- انګریزی)-

ټرېم:(ټرېم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټرام- (م- انګریزی)-

ټرېم وے:(ټرېم-وے)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټرام وے- (م- انګریزی)-

ټرېن:(ټرېن)اسم- واحد- مذکر- رېل ګاډے- دَ اُور ګاډے- (م- انګریزی)-

ټرېنډ:(ټرېنډ)اسم صفت- واحد- مذکر- تجربه کار- تربیت یافته- ماهر- (م- انګریزی)-

ټرېننګ:(ټرے-ننګ)اسم- واحد- مذکر- تربیت- دَ څۀ فن یا کار باقاعده زده کړه- (مصدرونه کؤل حاصلول)-

ټرے:(ټۀ-رے)صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټراوو-

ټرے:(ټرے)اسم- واحد- مذکر- مجمه- پتنوس- (م- انګریزی)-

ټرے:(ټ-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ چتی مومره مرغۍ چې پۀ یو ځاے نۀ ټینګیږی او هر وخت دانګی رادانګی-

ټز:(ټز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټیز-

ټزن:(ټ-زن)اسم صفت- واحد- مذکر- ټیزن- ټیزمار- بې غېرته- وېرندوکے-

ټزول:(ټۀ-ز-ول)مصدر متعدی- پرول- پۀ ټیزونو راوستل-

ټزولے:(ټۀ-ز-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټزول-

ټزون:(ټۀ-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټزول-

"زبر"(خ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "ۀ"(یو-بې-دۀ)

ټزونګ:(ټه-ز-زنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټزول-
ټزونه:(ټه-ز-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټزول-
ټزوونکے:(ټه-ز-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټزول-
ټس:(ټس)اسم صوت- د څه کلک څیز د ماتېدو آواز- د څپېړې آواز-
ټس:(ټس)اسم- واحد- مذکر- (۱)وجه- سبب- سوب- (۲)پوسکی- (۳)زور
څیز- وروست څیز- (۴)بدل- بز- (۵)اسم صوت- د پوسکی آواز-
ټس:(ټس)اسم- واحد- مذکر- په مزه مزه ژړا- جمع ټسی- (م- هندی)-
ټسا:(ټ-سا)اسم- ټسار- ټڅا- د ټس ټس پرله پسې آواز-
ټس پس:(ټس-پس)اسم صفت- (۱)عبث- فضول- (۲)ناپائېدار- کچه-
ټسټ:(ټسټ)اسم- واحد- مذکر- امتحان- ازمېښت- تجربه- جمع ټسټونه-
(م- انګریزی)-
ټس ټس:(ټس-ټس)اسم- واحد- مذکر- (۱)پس پس- پسار- ګنګوسے- ورو
ورو خبرې- (۲)پټه ژړا-
ټس ټس:(ټس-ټس)اسم صوت- (۱)د څه څیز د ماتېدو آواز- ړزې ړوزې-
(۲)د جنګ نښته-
ټسر:(ټ-سر)اسم- واحد- مذکر- مصنوعی ریښم- معمولی وریښم- له
مصنوعی ریښمو جوړه کپړه-
ټسری:(ټ-سه-ری)اسم- د ټسر نه جوړ-
ټسک:(ټسک)اسم- واحد- مذکر- ړارن- وېرېدونکے- بېکاره- بې زړه- بې
خونده- د بل لاسو ته ناست-
ټسکوره:(ټس-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تسکوره-
ټسکورے:(ټس-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- څڅېدلې ړوړی- هغه ړوړی چې
په تنور کښې ښېدلې وی-
ټسکول:(ټس-ک-ول)مصدر متعدی- ژړول-
ټسکون:(ټس-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټسکول-
ټسکونکے:(ټس-ک-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټسکول-
ټسکونګ:(ټس-ک-زنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټسکول-
ټسکونه:(ټس-ک-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټسکول-
ټسکه:(ټس-که)اسم- واحد- مؤنث- ټس- ټسکے- اوښه-
ټسکه ټسکه:(ټس-که-ټس-که)اسم- د "ژړا" د پاره تحقیری کلمه-
ټسکی:(ټس-کی)اسم- مؤنث- (۱)بې خوندی- سستی- لټوالے- لټتوب-
(۲)پخوالے- پختوب-
ټسکېدل:(ټس-کې-دل)مصدر لازم- ورو ورو ژړل- په سلګو سلګو ژړل- ټسکے
کول-
ټسکېدلے:(ټس-کې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټسکېدل-
ټسکېدن:(ټس-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټسکېدل-
ټسکېدنګ:(ټس-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټسکېدل-
ټسکېدنه:(ټس-کې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټسکېدل-

ټسکېدونکے:(ټس-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټسکېدل-
ټسکېده:(ټس-کې-ده)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه-
وګورئ ټسکېدل-
ټسکے:(ټس-کے)اسم- واحد- مذکر- له ژړا نه ډکې خبرې- له غریو ډک
آواز- په ژړا کښې سلګی وهنه-
ټسکے:(ټس-کے)اسم صوت- د جنګ په وخت د دوز پیشوګانو آواز-
ټسلک:(ټس-لک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پسکو- پسکن- پسکاوې-
(۲)وګورئ ټسک-
ټسمس:(ټس-مس)اسم صفت- واحد- مذکر- لټ- سست- بېکاره- ناراسته-
ټسن:(ټه-سن)اسم- واحد- مذکر- ازم تار- کچه تار-
ټسن:(ټه-سن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې بې خایه نخرې
کوی- (۲)وګورئ ټسلک-
ټسو:(ټه-سو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټسلک-
ټسو:(ټ-سو)اسم صفت- واحد- مذکر- ډېر لږ- معمولی- کم- لږ شانې-
لکوټې- لږ کوټې- یو بکس-
ټسول:(ټ-س-ول)مصدر متعدی- ټکول- غربول- ډبول- ړزول-
ټسولے:(ټ-س-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټسول-
ټسومار:(ټ-سو-مار)متعلق فعل- په شریکه یو کس وهنه- په ګډه یو کس
راګېرونه او وهنه- جمع ټسومارونه-
ټسون:(ټ-س-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټسول-
ټسونکے:(ټ-س-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټسول-
ټسونګ:(ټ-س-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټسول-
ټسونه:(ټ-س-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټسول-
ټسبار:(ټه-سه-مار)اسم صوت- وګورئ ټسا-
ټسبر:(ټه-سه-مر)اسم صوت- وګورئ ټسا-
ټسی:(ټه-سی)اسم صفت- لافو- دروغ کو- ړوزې مار-
ټسیا:(ټس-یا)اسم صوت- وګورئ ټسا-
ټسې:(ټه-سې)اسم- جمع- مؤنث- لافې- ړوزې- دروغ کوئ-
ټسېدل:(ټ-سې-دل)مصدر لازم- ټکېدل- وهل کېدل- غربېدل- ډبېدل-
ټسېدلے:(ټ-سې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټسېدل-
ټسېدن:(ټ-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټسېدل-
ټسېدنګ:(ټ-سې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټسېدل-
ټسېدنه:(ټ-سې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټسېدل-
ټسېدونکے:(ټ-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټسېدل-
ټسېده:(ټ-سې-ده)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه-
وګورئ ټسېدل-
ټغ:(ټغ)اسم صفت- نېغ سترګے- ټغې سترګې لرونکے- ټاغے-
ټغ:(ټغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)شین ټغ- (۲)بانه- (۳)شنه قبا- (۴)د سترګو

پاسنی پرده- (۵)تیز-

ټغ:(ټغ)اسم صوت- (۱)د نیولو په وخت د چرګ آواز- (۲)د خنو بیماریو په نتیجه کښې د مرګ په وخت د چرګ آواز-

ټغ:(ټغ)اسم صفت- واحد- مذکر- راکوږ- ټیغ- کونټی- ټونډ مونډ- کنجلک-

ټغ:(ټغ)اسم- د مالوچو ټکور- تاوده مالوچ-

ټغا:(ټه-غا)اسم صوت- د ټغ ټغ آواز- پرله پسې ټغ ټغ-

ټغارے:(ټه-غا-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بوکه- بوقه- بالټے- (۲)تغارے- ټاټکے-

ټغټغے:(ټغ-ټه-غے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټیز-

ټغ ټغے:(ټغ-ټه-غے)اسم- واحد- مذکر- ټغ ټغه- کاغه- قاغه- د کارغهٔ په شان یو حلال مارغهٔ- د سائنسی نوم د پاره وګورئ کاغه-

ټغر:(ټ-غر)اسم- واحد- مذکر- (۱)کمبل- یو قسم فرش- موم جامه- (۲)یو قسم ولـه- (۲)د بار وړونکو څاروو په شا اچولے کېدونکے خل چې خرڅورے هم ورته وائی- جمع ټغرونه-

ټغره:(ټ-غه-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټپه ټغره-

ټغ سترګے:(ټغ-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټاغے-

ټغکے:(ټ-غ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټغے- د چرګانو چرګوړیو بیماری چې ژر ژر یې وژنی- (۲)وبائی مرګ- (۲)نزله- زکام- ټخله- (افغانستان)-

ټغکے:(ټ-غ-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- مست- نشائی- کلانکار- (افغانستان)-

ټغل:(ټه-غل)مصدر متعدی- ټېرویستل- دزکه کول- ټکل- ټېرابستل-

ټغلے:(ټه-غه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټغل-

ټغمغ:(ټغ-مغ)اسم- واحد- مذکر- سخت زکام چې سینه او پوزه یې نیولې وی-

ټغمه:(ټغ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)برچ- کاوړه- (۲)ظلم- مصیبت- غضب- (۳)بېره بده خبره- بې مناسبه خبره- لعنت-

ټغن:(ټ-غن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)یربېدونکے- ویربېدونکے- ټیزن- پارن- (۲)ټخېدونکے- (۲)شور زوږ کونکے-

ټغن:(ټه-غن)حاصل مصدر- وګورئ ټغل-

ټغنګ:(ټه-غنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټغل-

ټغنه:(ټه-غه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټغل-

ټغو:(ټه-غو)اسم- جمع- مذکر- د ټغ جمع- (عام طور سره د سترګو د پاره راځی)-

ټغول:(ټه-غ-ول)مصدر متعدی- (۱)خفه کول- زهیرول- ضرر رسول- (۲)څوک په عبث خبرو مجبورول- (۲)چرګانو نه د ټغ ټغ اواز ایستل-

ټغولے:(ټه-غ-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټغول-

ټغون:(ټه-غ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټغول-

ټغونکے:(ټه-غون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټغل-

ټغونکے:(ټه-غ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټغول-

ټغونګ:(ټه-غ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټغول-

ټغونه:(ټه-غ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټغول-

ټغهار:(ټغ-هار)اسم صوت- د چرګانو پرله پسې د ټغ ټغ اواز-

ټغې سترګې:(ټه-غې-ستر-ګې)اسم صفت- جمع- مؤنث- ټغ سترګې- ټېغې سترګې- ټغې سترګې- بوټې سترګې- رډې سترګې- راوتې سترګې- بې حیا سترګې-

ټغېدل:(ټه-غې-دل)مصدر لازم- (۱)فضول غږېدل- عبث خبرې کول- (۲)د چرګانو ټغ ټغ آواز کول- (۲)په عذابېدل- خوربدل- کړېدل- (افغانستان)-

ټغېدلے:(ټه-غې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټغېدل-

ټغېدن:(ټه-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټغېدل-

ټغېدنګ:(ټه-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټغېدل-

ټغېدنه:(ټه-غې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټغېدل-

ټغېدونکے:(ټه-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټغېدل-

ټغېده:(ټه-غې-ده)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ټغېدل-

ټغے:(ټ-غے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټغکے-

ټفن:(ټ-فن)اسم- واحد- مذکر- د غرمې روټۍ- بربخر- د بربخر روټۍ- (م- انګریزی ټفنګ)-

ټفن باسکټ:(ټ-فن-باس-کټ)اسم- واحد- مؤنث- د خوراک ټوکری- (م- انګریزی)-

ټفن کېرئیر:(ټ-فن-کے-ری-یر)اسم- واحد- مذکر- د خوراک وړلو لوښے یا ډبے- (م- انګریزی)-

ټق:(ټق)اسم صوت- (۱)د څه کلک څیز د پرېوتو از ماتېدو آواز- د ټوپک ډز- (۲)د ګټو د بندونو نه وتے آواز- ټک- (۲)د دروازې د وهلو آواز- (۴)د وخت سره د طوالت معنی ورکونکے متعلق فعل لکه ټق نماښام، ټق سحر-

ټقا:(ټ-قا)اسم صوت- پرله پسې د ټق ټق آواز- ټقهار- ټقا- ټقارے- ټکا-

ټقار:(ټ-قار)اسم صوت- وګورئ ټقا-

ټقارے:(ټ-قا-رے)اسم صوت- وګورئ ټقا-

ټقاله:(ټ-قا-له)اسم- واحد- مؤنث- نقل- پېښه- ملنډه- ټوکه- ټکاله- وشته- د خندا خبره- دې سره ټوقه د سابقې په توګه استعمالیږی- جمع ټقالې-

ټقالی:(ټ-قا-لی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټوقې کونکے- وشتې کونکے- ټوقمار- ټوقی- ټکالی- (۲)تېزفکره- (افغانستان)-

ټقر:(ټ-قر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټکر-

ټقره:(ټ-ق-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټکره-

ټقول:(ټ-ق-ول)مصدر متعدی- وګورئ ټکول-

ټقولے:(ټ-ق-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټقول-

ټقون:(ټَ-قَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ټقول-
ټقونکے:(ټَ-قَ-وَن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټقول-
ټقونګ:(ټَ-قَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټقول-
ټقونه:(ټَ-قَ-وَ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټقول-
ټقه:(ټَ-قه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټکه-
ټقهار:(ټَق-هار)اسمِ صوت- وګورئ ټقا-
ټک:(ټَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټاکو- د خاروو یو مرض- (۲)ګنډ- (۳)وار- (۴)برید- پوله- (۵)ابائی میراث- (۶)د خربوزو، ختکو وغیره د کرلو ځایْ- (۷)هغه لرګے چې زمیدار پرې وخت معلوموی- (۸)اعتراض- تنقید- (۹)ګذار- ګوذار- (۱۰)پهٔ حلق کښې راختونکې خطرناکه دانه- (۱۱)ضد- کینه- ټکه- بغض- عداوت- کرکه- (۱۲)وګورئ اړ- (جمع ټکونه)-
ټک:(ټِک)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)الړ- ذره- (۲)عین- ټیک-
ټک:(ټک)اسمِ صوت- وګورئ ټق-
ټکا:(ټَ-کا)اسمِ صوت- وګورئ ټقا-
ټکارکے:(ټَ-کار-کے)اسم- واحد- مذکر- وچه مېره- دښته- للمه- سخته هواره زمکه چې وابهٔ پکښې زرغنه نهٔ کوی-
ټکارے:(ټَ-کا-رے)اسم- واحد- مذکر- یوه ځنګلی ونه چې لرګے یې پهٔ سوزېدو کښې ډېر ټکارے کوی- ټقارے-
ټکال خور:(ټَ-کال-خور)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ډېره ټیکاله خوړونکے- خوراکی- ږوږی غرپ- تیارخور-
ټکالکه:(ټَ-کال-که)اسم- تالکه- تورغی- یوه وړه مرغی-
ټکال مار:(ټَ-کال-مار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- روټی مار- مېلمه دوست- ږوږی مار-
ټکال ماری:(ټَ-کال-ما-ري)اسم- مېلمه دوستی-
ټکاله:(ټَ-کا-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټقاله-
ټکالی:(ټَ-کا-لی)اسمِ صفت- وګورئ ټقالی-
ټکان:(ټَ-کان)اسم- واحد- مذکر- (۱)تیندک خوړنه- ټوکر وهنه- د اس یا د بل ځیز تیندک- (۲)جړق خوړنه- ځنګېدنه- د زلزلې پهٔ وجه د زمکې جړق خوړنه-
ټکان ګر:(ټَ-کان-ګر)اسم- واحد- مذکر- د جوارو د ټکولو لرګے-
ټکانه:(ټَ-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د وسېدو ځایْ- ټېکانه- ټکانه- (۲)اندازه- حد- جمع ټکانې- (افغانستان)-
ټکانه:(ټَ-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټکانه- جمع ټکانې-
ټک پرک:(ټک-پ-رک)اسمِ صوت- د مرز آواز- پیت پرق-
ټک پهٔ ټک:(ټک-پهٔ-ټک)متعلق فعل/صفت- سمدستی- ژر- پهٔ هغه ساعت- فوراً- لګو ترک-
ټک ټک:(ټک-ټک)اسمِ صوت- د دوو ځیزونو د یو بل سره د جنګېدو آواز- د ګړی د سېکنډونو د ستن آواز- ټقا-

ټکټکاتے:(ټک-ټَ-کا-تے)اسم- واحد- مذکر- یو خاص قسم کونګټ- جمع ټکټکاتی-
ټکټکانکه:(ټک-ټَ-کان-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ماشومانو یوه لوبه- ټکټکانے- (۲)یو قسم چینجے- جمع ټکټکانکې-
ټکټکانه:(ټک-ټَ-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټکټکے- ټکټکه- ټکټکی- ټکټکے- د ژرندې ناوې سره لګېدلے هغه لرګے چې یو سر یې د ژرندې پل سره لګی او پهٔ دې حرکت داني لهٔ وټې نه ناوې ته راځی- (۲)یو قسم مرغی چې ونه ټکوی او چینجی ترې راوباسی- ترکاڼ-
ټکټکانے:(ټک-ټَ-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ماشومانو یوه لوبه- (۲)ټکټکانه- یو قسم مرغی- (۳)د مارغانو د ویرولو او شړلو د پاره ونه کښې ترلے شوے لرګے-
ټکټکه:(ټک-ټهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- نری بخی- یو قسم ډېره باریکه بخی-
ټکټکه:(ټک-ټهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټکټکانه-
ټکټکی:(ټک-ټهٔ-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)وګورئ ټکټکانه- (۲)یو قسم مرغی-
ټکټکے:(ټک-ټهٔ-کے)متعلق فعل- ناآرامی- ناقلاری-
ټکټکے:(ټک-ټَ-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم کب چې لوئ بریتونه لری او د وجود برنی حصه یې توره وی-
ټکټکے:(ټک-ټَ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټپټپے- موټرسائیکل- ټکټکے- ډب ډبے- (۲)هغه د لرګی جوړ فریم چې د ښېنتونو او کروړو د سزا د پاره پرې مجرم ترلے شی- (۳)وګورئ ټټک-
ټک ټوک:(ټک-ټوک)اسمِ صوت- (۱)پهٔ یو مخ د ډزو آواز- د وړو وسلو ډزو آواز- (۲)د دوو ځیزونو د یو بل سره د جنګېدو مسلسل آواز-
ټک ټوک:(ټک-ټوک)اسمِ مرکب- (۱)ټکه ټوکه- وړوکے وړوکے سامان- وړه سودا- (۲)ټکړې ټکړې- (۳)ماتې پیسې- رېزګاری- (۴)د خاروی حلالوُنه او وېشنه- سمبالونه- (۵)پرې پرې-
ټکر:(ټَ-کر)اسم- واحد- مذکر- (۱)تصادم- ډغره- بدری- تیندک- ټکره- دیکه- ټېله- (۲)دوکه- (۳)نقصان- (مصدرونه خوړل/ورکول)-
ټکر:(ټَ-کر)اسم- واحد- مذکر- د خرکاری ځاې او پېشه-
ټکر:(ټَ-کر)اسم- واحد- مذکر- ټوک- ټوکړه- (افغانستان)-
ټکر:(ټَ-کر)اسم- واحد- مذکر- ټاکر- ماکو- کالو- ماښو- مارمچی- هغه موچی چې د ګرمی د موسم د تېرېدو نه پس یې لښه پکه شی-
ټکره:(ټَ-که-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټقره- (۲)تیندک- (۳)ډغره- ټوکره- جمع ټکرې-
ټکری:(ټَ-ک-ري)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)ټکرې خوړونکے- ټکرمار- بدقسمته- چې سر تندے یې نهٔ لری- (۲)د خرکارانو سره کار کوُنکے-
ټکسال:(ټک-سال)اسم- واحد- مذکر- هغه ځایْ چې روپی پکښې جوړیږی- جمع ټکسالونه- (م- هندی)-

ټَ (ځی-رل)، ټِ (مې-ره-ول)، ټی (پیا-لی)، ټے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ټکسالي:(ټک-سا-لي)اسم- واحد- مذکر- سُوچه- کره- د ټکسال سره تعلق لرونکے-

ټکسر:(ټک-سر)اسم- واحد- مذکر- کرس- ټکر- ړغره-

ټکسره:(ټک-س-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه مرغۍ چې په سر ئې داغ وي- شين سرے-

ټکسرۍ:(ټ-ک-س-ري)اسم- مؤنث- د کچو بزو او نورو څاروو محصول- (افغانستان)-

ټکسرے:(ټک-س-رے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بې شرمه- سپين سترگے- بې حيا-

ټکک:(ټ-کک)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بېخي ړک- تر خُلې خُلې ړک- ډېر ړک- سر تر سره ړک- (افغانستان)-

ټککه:(ټ-ک-که)اسم- واحد- مؤنث- ټکټکے- هغه لرگے چې د يوم د خلې د پاسه په پښه د زور ورکولو د پاره لگولے شوے وي-

ټک لاس:(ټک-لاس)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)ټک لاسکے- وران کارے- ټک لاستے- ټک لاسے- (۲)چالاک- چست- تکړه- (۳)نشانه باز- (۴)زړهٔ ور- (۵)هغه سړے چې هر وخت ئې لاس د هلو د پاره په حرکت کښې وي-

ټک لاستے:(ټک-لاس-تے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- جمع ټک لاستي- وگورئ ټک لاس-

ټک لاسکے:(ټک-لاس-کے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وگورئ ټک لاس-

ټک لاسے:(ټک-لا-سے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وگورئ ټک لاس-

ټکله:(ټ-ک-له)اسم- واحد- مؤنث- هغه تخم چې په زمکه کښې پاتې شي او ضائع شي-

ټکله:(ټ-ک-له)اسم- واحد- مؤنث- ککوړے- ټکلے-

ټک لهٔ ټکه:(ټک-لهٔ-ټ-که)متعلق فعل/صفت- سمدستي- ناڅاپي- ټک په ټک- (افغانستان)-

ټکن:(ټ-کن)اسم صفت- واحد- مذکر- برگ بروگ- ټکي ټکي-

ټکنده:(ټ-کن-ده)اسم- واحد- مؤنث- ټکنۍ- ټکنه- د گرمۍ نه سره شوې- يشېدلې- په خوانۍ کښې- په پېغلتوب کښې-

ټکه ټوکه:(ټ-که-ټو-که)اسم- واحد- مؤنث- واړهٔ واړهٔ کارونه- سود سودا- اخوا دېخوا کارونه- لټر پټر-

ټکمخے:(ټک-مه-خے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ټکي مخے- هغه څوک چې په مخ ئې داغونه وي-

ټکلے:(ټ-ک-لے)اسم- واحد- مذکر- ککوړے- د باجې ريکارډ- د گراموفون ککوړے-

ټکنه:(ټ-که-نه)اسم- واحد- مؤنث- ټاپه- مهر-

ټکنيک:(ټک-نيک)اسم- واحد- مذکر- هُنر- چل- طريقه- سليقه- ساخت- جوړښت- فن- (م- انگريزي)-

ټکنۍ:(ټ-ک-نۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وگورئ ټکنه-

ټکنے:(ټ-که-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- مست- خوان- ځنے-

ټکنے:(ټ-ک-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترېدونکے- پښه نېولے- مات زړے- رنړ- گاگيرے- (۲)متردد- دوه زړے- (۲)مظلوم-

ټکنه:(ټ-ک-نه)اسم- واحد- مذکر- سره- ټکنده- ټکنۍ-

ټکنے:(ټ-ک-نے)اسم صفت- (۱)بېړندے- گړندے- تېز- (۲)ترهېدونکے- خناور- (۳)لټ- سست- ناراست- جمع ټکني-

ټکوپترے:(ټ-کو-پت-رے)اسم صفت- فوري طور سره صحت موندونکے- د موثر علاج نتيجه کښې فوراً صحت ياب-

ټکوپو:(ټ-کو-پو)اسم صفت- ناڅاپه مړ- ناگهانه مړ- سمدستي مړ- ټک د ټکه مړ-

ټک و ټوک:(ټ-کو-ټوک)اسم صوت- ټکار- ټسار- ژر ژر او پرله پسې ړزې-

ټکوچ:(ټ-کوچ)اسم- واحد- مذکر- کنډنه- کنډ- د بټن په ځائې ټک ورکونه-

ټک وځپ:(ټ-کو-ځپ)اسم صفت- فی الفور- بې ډيله-

ټکور:(ټ-کور)اسم- واحد- مذکر- بدرۍ- تيندک- ټکره- کنگس- (افغانستان)-

ټکور:(ټ-کور)اسم- واحد- مذکر- وجود له په تود ټيکرۍ، کاڼي يا بل څهٔ تپ ورکونه- تبنه- تپ- د وجود يو اندام ته گرمي رسونه- دردېدونکي ځائې له تپ ورکونه-

ټکورکے:(ټ-کور-کے)اسم تصغير- ووړکے پوزے- پوزکے- د ميزري جوړ ووړکے انبېرے- ټکورے- ټکورے-

ټکورول:(ټ-کو-ر-ول)مصدر متعدي- (۱)تبل- ټبل- تودول- گرمول- (۲)وهل- (۲)زيان ورسول- تاوان ورسول-

ټکورون:(ټ-کو-ر-ون)حاصل مصدر- وگورئ ټکورول-

ټکورونکے:(ټ-کو-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر-- وگورئ ټکورول-

ټکورونگ:(ټ-کو-ر-ونگ)حاصل مصدر- وگورئ ټکورول-

ټکورونه:(ټ-کو-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وگورئ ټکورول-

ټکوره:(ټ-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زخم يا پرهر ټکورونه- ټکور- (۲)گوزار-

ټکوري:(ټ-کو-ري)اسم- جمع- مذکر- کټوري- د ابو څښلو لوښي- (افغانستان)-

ټکورېدل:(ټ-کو-رې-دل)مصدر لازم- (۱)تبل کېدل- ټکور کېدل- (۲)تاواني کېدل- ضرربدل- (۳)وهلے کېدل- (د سزا په طور)-

ټکورېدن:(ټ-کو-رې-دن)حاصل مصدر- وگورئ ټکورېدل-

ټکورېدنگ:(ټ-کو-رې-دنگ)حاصل مصدر- وگورئ ټکورېدل-

ټکورېدنه:(ټ-کو-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وگورئ ټکورېدل-

ټکورېدونکے:(ټ-کو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وگورئ ټکورېدل-

ټکورېدهٔ:(ټ-کو-رې-دهٔ)حاصل مصدر- د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وگورئ ټکورېدل-

ټکورے:(ټَ-کو-رے/ټُ-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټکورکے-

ټکوسترې:(ټَ-کو-سټ-رې)اسم- سمدستي ختمؤنه- کوتره کؤنه- د يو بل د پاسه راغرخونه- ټکوسترے- (مصدرونه کؤل/کېدل)-

ټکوسترے:(ټَ-کو-سټ-رے)اسم- وګورئ ټکوسترې-

ټکول:(ټَ-کَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)وهل- دربول- پېؤل- (۲)کوټل- (۳)قېمه کول- ورژل- (۴)خصي کول- (۵)چيچل-(۶)د غلې نه دانې بېلؤل-

ټکولے:(ټَ-کَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټکؤل-

ټکون:(ټَ-کَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټکول-

ټکونکے:(ټَ-کون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- (۱)د ژرندې د پلونو تيرهٔ کونکے- (۲)د ژرندې تيز چورلونکے-

ټکونکے:(ټَ-کَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټکؤل-

ټکونګ:(ټَ-ک-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټکول-

ټکونهٔ:(ټَ-ک-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټکول-

ټکونے:(ټَ-کَ-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پړول لاستے- هغه لرګے چې پړول پرې وهلے شي- (۲)د ټکولو کار- د فصل نه د دانو ايستلو کار-

ټکونے:(ټَ-کَ-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- د وهلو پېؤلو دښمنی-

ټکوڼ:(ټَ-کوڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ماشومانو يوه لوبه- کوڼے- (۲)نوې رازرغنېدنه- سر وهنه- (افغانستان)-

ټک وهل:(ټَک-وَ-هَل)مصدر متعدی- (۱)بخې لګول- منهل- ننه ايستل- (۲)ختمول- خلاصول- کېښودل-

ټک وهلے:(ټَک-وَ-هَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټک وهل-

ټک وهن:(ټَک-وَ-هَن)حاصل مصدر- وګورئ ټک وهل-

ټک وهنګ:(ټَک-وَ-هَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټک وهل-

ټک وهنه:(ټَک-وَ-هَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټک وهل-

ټک وهونکے:(ټَک-وَ-هُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر-- وګورئ ټک وهل-

ټکه:(ټَ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کنده- پړغلګے- (۲)اندېښنه- وهم- ويره- (۳)سمدستي- له سره- (۴)بغض- کينه- کرکه- نفرت- دښمني- (۵)د ټيکانو لوبه- (۶)لاس پړکونه-

ټکه:(ټه-که)اسم- واحد- مؤنث- د انې نيمه- دوه پېسيز- دوه پېسې وال-

ټکه:(ټَ-که)اسم- تنبا- د اسمان د ګړځېدو آواز- صاعقه-

ټکه:(ټَ-که)اسم- (۱)غرنېزه بزه- غرځنې بزه- غرخه- (۲)سر کشه بزه- هغه بزه چې د رمې په سر کښې روانه وي-

ټکه ټوکه:(ټَ-که-ټو-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لوښی- سامان- (۲)تياری- (۳)کش کړپ- حرکت- (۴)ټک ټوک-

ټکه چال:(ټَ-که-چال)اسم- واحد- مذکر- په ورو ورو تګ- پښې راکښنه-

ټکه سرے:(ټَ-کَ-سَ-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه سپاهي چې په تنخواه نوکر وي- د باقاعده فوځ يا پوليس غړے- (۲)بې خونده- بې قيمته- ټنګه سرے- حقير-

ټکهار:(ټَ-کَ-هار)اسم صوت- (۱)پرته پسې د ټک ټک آواز- (۲)د ورو وسلو بزې-

ټکهار:(ټَ-که-هار)اسم صفت- واحد- مذکر- ټکنے- اندېښمن- شکمن- ناقلاره-

ټکې:(ټهٔ-کي)متعلق فعل/صفت- په ځاې- سمدستي- فوراً- دا وخت- دا دم- دا ساعت- (له يا په سره راځي)-

ټکې په ټکې:(ټهٔ-کي-پهٔ-ټهٔ-کي)صفت/متعلق فعل- ببدو- لفظ په لفظ- هو بهو- حرف په حرف-

ټکې ټکې:(ټهٔ-کي-ټهٔ-کي)صفت- خال خال- داغ داغ- برګ بروګ- برګ ترګ- ټکيالے-

ټکيالے:(ټک-يا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټکې ټکې- داغ داغ- برګ- ټپلے-

ټکيوان:(ټَ-کي-وان)اسم- واحد- مذکر- اچه- دوښاخه- د مېوې د ونې د ښاخ هغه حصه چې تنې سره لګېدلې وي-

ټکېدل:(ټَ-کې-دَل)مصدر لازم- (۱)مېده کېدل- وهلے کېدل- قېمه کېدل- (۲)خصي کېدل- (۳)زرهٔ توربدل- کتاربدل-

ټکېدلے:(ټَ-کې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټکېدل-

ټکېدن:(ټَ-کې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ټکېدل-

ټکېدنګ:(ټَ-کې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټکېدل-

ټکېدنه:(ټَ-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټکېدل-

ټکېدونکے:(ټَ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټکېدل-

ټکېدهٔ:(ټَ-کې-دهٔ)حاصل مصدر- د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ټکېدل-

ټکې:(ټَ-کې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)ککورے- ټيکې- (۲)لنډې- ټپه- (۳)په برق برق خندا- په ډکه خلهٔ خندا- (۴)مچرغنبه کښې د کاڼي کېښودو ځاې- کاسه- (۵)که- لړمه-

ټکې:(ټَ-کې)اسم- واحد جمع- مؤنث- چرمښکې- کردې- بورک-

ټکې:(ټَ-کې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)کشيده- بخې- (۲)نښانه- ګل زيرې- (۳)د پېزار تلے-

ټکے:(ټهٔ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)حرف- تورے- (۲)لفظ- (۳)مصرعه- (۴)خال- داغ- ځاځکے- (۵)مقرر ځاې- (۶)نقطه- (۷)ثبوت- (۸)ذره- (۹)عبرت- جمع ټکي-

ټکے:(ټَ-کے)اسم صفت- هغه خارږے چې په تندي ي سپين داغ وي-

ټک:(ټک)اسم صفت- واحد- مذکر- ټکي مار- ټکي ژن- غل- چليګر- دوکه باز- چلولی- چالاک- چنباز- دری ببيز- ټيټالے- جمع ټکان-

ټک برک:(ټک-بَرک)اسم صفت- واحد- مذکر- ټکي ژن- ټکمار- په زړهٔ کښې غل-

ټکرے:(ټک-رے)اسم- واحد- مذکر- ټيکرے- پرزے- چيل-

ټک ژن:(ټک-ژن)صفت- وګورئ ټک برک-

ټکل:(ټ-کل)مصدر متعدی- دوکه ورکول- ټکی کول- فرېب ورکول- چا سره ټکی کول-

ټکلے:(ټ-کۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټکل-

ټکمار:(ټک-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټک- مؤنث ټکماره-

ټکماری:(ټک-ما-ری)اسم- واحد- مؤنث- ټکی- مکر- چل- دهوکه- فرېب

ټکن:(ټ-کن)اسم صفت- (۱)وګورئ ټک- (۲)حاصل مصدر دٔ ټکل-

ټکنه:(ټ-کۀ-نه)حاصل مصدر- (۱)وګورئ ټکل- (۲- اسم صفت)دٔ ټک مؤنث-

ټکوش:(ټ-کوش)اسم صوت- هغه آواز چې دٔ بادشاه یا دٔ بل کوم لوئ سړی دٔ راتللو پۀ وخت به دٔ هغۀ نوکرانو دٔ دې دٔ پاره کولو چې خلق لرې شی او لار پرېږدی-

ټکونکے:(ټ-کون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټکل-

ټکی:(ټ-کی)اسم- واحد- مؤنث- دٔ ټک کار او پېشه- چل وټه- فرېب- دوکه- غولونه- چم- چمبازی- غلا- جمع ټکیانې-

ټکی ټوری:(ټ-کی-ټو-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټکی- اړت خوړت-

ټکی ژن:(ټ-کی-ژن)صفت- وګورئ ټک برک-

ټکیل:(ټ-کی-یل)مصدر متعدی- وګورئ ټکل-

ټکینه:(ټ-کی-یۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټکنه-

ټکیونکے:(ټ-کی-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټکونکے-

ټل:(ټل)اسم- تل- رېګستان-

ټل:(ټل)اسم- واحد- مذکر- (۱)مل- ملګرے- شریک- (۲)ګڼ فصل- کښې ونې- (۳)محلت- چم- محله- (۴)قبیله- (۵)باړی- پټے- دٔ کلیوالې زمکې څلورمه برخه- (۶)دٔ ګلو غنچه- (۷)نژدې والے- نزدیکت- (۸)حد- پوله- (۹)ماتې- شکست-

ټلتوب:(ټل-توب)اسم- واحد- مذکر- ملګرتیا- مرسته-

ټلکے:(ټل-کے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وړوکے ټل- وړوکے پټے- غوږے-

ټلوالی:(ټل-وا-لی)اسم- واحد- مؤنث- ملګرتیا- مرسته- ټله- پره- ډله- ملاتړی-

ټلوالے:(ټل-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټلتوب-

ټله:(ټ-له)اسم- واحد- مؤنث- ملګرتیا- پره- ډله- ملاتړ-

ټلی:(ټ-لی)اسم- واحد جمع- مؤنث- ټالی- ټالی- وړوکے جرس- کینکرے- غره- دٔ ټنګ ټنګ آواز کونکې آله- هغه آله چې دٔ خبرداری دٔ پاره یا څوک رابللو دٔ پاره پکارولے شی- کنټی-

ټم:(ټم)اسم صوت- (۱)ټاڼ- دٔ سپې غپا- دٔ سپی غونګار- دٔ سپی آواز- (۲)دٔ داړونکو ځناورو غړ- (۳)دٔ دوو شونډو پۀ یو ځایٔ کولو یو مخصوص آواز- (۴)ګټه ګونډه- (اسم)-

ټماټر:(ټه-ما-ټر)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)ټرماټر- کشمیرے- سور باټینګړ- رومی- سرۀ بانجان- رومی بانجان- نباتاتی نوم سولانم لائیکو پرسیکم (SOLANUM LYCOPERSICUM)- (۲)سوررنګے سړے- سوررنګے-

ټماغه:(ټ-ما-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تماغه- هغه دٔ څرمنې ټوپی چې باز یا بل ښکاری مارغۀ ته پۀ سرولے شی- (۲)دٔ افسری ټوپی- (افغانستان)-

ټمباره:(ټم-با-ره)اسم- واحد- مؤنث- پۀ چغو چغو ژړا- بغارې- جمع ټمبارې-

ټمبارې:(ټم-با-رې)اسم- جمع- مذکر- وګورئ ټمباره-

ټمبر:(ټم-بر)اسم- واحد- مذکر- دٔ آبادی لرګی- ګټه- تنه- (م- انګریزی)-

ټمبکه:(ټم-بۀ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دٔ بیوې تاخ- بیوټ- (۲)ګبین- ککے-

ټمبل:(ټم-بل)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لټ- ناراسته- بېکاره- (۲)غټ او څرب- پړسېدلے- ناړامه-

ټمبورین:(ټم-بو-رین)اسم- واحد- مذکر- داریال- هغه داریال چې ورسره کنګرزګان لګېدلی وی- (م- انګریزی)-

ټمبوس:(ټم-بوس)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غټ- څرب- پړسېدلے- (۲)ناړامه- ناراسته- لټ- (۳)ګیډو-

ټمبه:(ټم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پړسېدلے- تومبیا- دٔ بدهضمی لۀ وجې پړسېدلے ګېډه- بند- چې قبض یٔ هم وی او اشتها یٔ نۀ وی- (۲)تمبه- دٔ دروازې پټ- (۳)ډله- (۴)اړام- اړم- وړومبی معنٰی کښې صفت-

ټمبیل:(ټم-بیل)اسم صفت- واحد- مذکر- ټمبه- ډېرېږ- ډېر پړسېدلے-

ټمپرېچر:(ټم-پرے-چر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګرمی- حرارت- (۲)تبه- تودوالے- (م- انګریزی)-

ټمټم:(ټم-ټم)اسم- واحد- مذکر- ټانګه- بګی- دٔ دوو پایو ګاډے چې چت پرې نۀ وی او پۀ اس یا اسپه راکښے شی-

ټمټمی:(ټم-ټ-می)اسم- واحد- مؤنث- دٔ ورډو ښو یوه مرغۍ چې پۀ اُبو کښې وسی- دٔ ایلی دٔ خاندان یوه مرغۍ-

ټمټیرے:(ټم-ټې-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټیټے- چیت- دٔ وړوکی قد څښتن- مندرے-

ټمټېل:(ټم-ټېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم مرغۍ- ګاړے- مؤنث ټمټېله- (۲)ګټه ګونډه-

ټمټېله:(ټم-ټې-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټمټېل-

ټمټے:(ټم-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټیټ- ټیټکے- ټمټیرے- ټونډ- ټونډ مونډ- (۲)اسم- دٔ لنډ لاسکی یوم-

ټمرے:(ټم-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- چیت سړے- ټمرکے- چندرکے- مندرے- مؤنث ټمرې-

ټمول:(ټ-م-ول)مصدر متعدی- (۱)غپول- (۲)څوک پۀ عبثو خبرو لګیا کول-

ټمولے:(ټ-م-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټمول-

زبر"(خ-بۀ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ۀ"(ز-ړه)، ۀ"(پو-ښې-دۀ)

ټمون:(ټ-م-وِن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټمول-

ټمونکے:(ټ-م-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټمول-

ټمونګ:(ټ-م-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټمول-

ټمونه:(ټ-م-وه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټمول-

ټمېدل:(ټ-مې-دل)مصدر لازم- (۱)غپېدل- (۲)فضول غږېدل- عبث خبرې کؤل-

ټمېدلے:(ټ-مې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټمېدل-

ټمېدن:(ټ-مې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټمېدل-

ټمېدنګ:(ټ-مې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټمېدل-

ټمېدنه:(ټ-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټمېدل-

ټمېدونکے:(ټ-مې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټمېدل-

ټمېدهٔ:(ټ-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ټمېدل-

ټـن:(ټن)اسم- واحد- مذکر- د وزن پېمانه چې اتویشت کچه منه یا زر کلو ګرامه وی (م- انګریزی)-

ټـناکه:(ټ-نا-که)اسم- واحد- مؤنث- د روپی دربمه برخه- (متروک)-

ټـنـباره:(ټن-با-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټمباره-

ټـنـټه:(ټن-ټه)اسم- واحد- مؤنث- فتنه- شر- فساد- (م- هندی)-

ټـنـټه:(ټن-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټانټه-

ټـنجه پنجه:(ټن-جه-پن-جه)اسم- واحد- مؤنث- ناز نخره- ادا- غمزه- کېنج مکېز- اوڼے پوڼے- جمع ټـنجې پنجې-

ټـنچن:(ټن-چن)فعلِ امر- اټـنـشن- پام- تیار شئ- بېدار شئ (د پاکستانی فوځ د قواعدو یوه اصطلاح)-

ټـندوره:(ټن-دو-ره)اسم- ژور- کوټے یا نور داسې ابهٔ لرونکی ځایونه چې تل ئې لرې وی-

ټـنډ:(ټـنډ)اسمِ صفت- ټـنډے- یو لاس نهٔ لرونکے-

ټـنډ:(ټـنډ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه غوایهٔ چې خصی شوے نهٔ وی- (۲)ځرب- چاغ- شلنډ- (۳)پړسېدلے- ډډ- (۴)مرور- (۵)سخت زړے- بې رحمه- (۶)بدمعاش- (۷- اسم)یو قسم انګور- (۸)کلک- قوی- (۹)قارجن- قهرژن- غصه ناک- (۱۰)خشکی- اواره-

ټـنډا:(ټن-ډا)اسم- واحد- مؤنث- اجتماع- جمع- جرګه-

ټـنډار:(ټن-ډار)صفت- تباه شوې-

ټـنډان:(ټن-ډان)اسم- جمع- مذکر- قندهار کښې یو قسم انګور- (افغانستان)-

ټـنډانه:(ټن-ډا-نه)اسم- واحد- مؤنث- اوراورکے- اوربلک-

ټـنډتوب:(ټـنډ-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټـنډوالے- ډډوالے- غټوالے- (۲)بدماشی- ټـنډتیا- نفس پرستی- (افغانستان)-

ټـنډتوت:(ټـنډ-توت)اسم- واحد- مذکر- یو قسم توت چې پهٔ قندهار کښې پېدا کېږی- (افغانستان)-

ټـنډتیا:(ټـنډ-تیا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټـنډتوب-

ټـنډر:(ټن-ډر)اسم- واحد- مذکر- د ټېکې د نرخ پېشکش- (م- انګریزی)-

ټـنډر:(ټن-ډر)اسم- واحد- مذکر- کنډر- وران ویجاړ- شاړ- غېر آباد- لوک- (افغانستان)-

ټـنډسی:(ټـنډ-سی)اسمِ صفت- چاغ- چاق- پنډ- غټ پټ- تکړه تیار-

ټـنډغرکے:(ټـنډ-غر-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې کېږه ئې د پړسوب لهٔ کبله بهر ته راوتې وی- (۲)وګورئ ټـنډ-

ټـنډغېمه:(ټـنډ-غې-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه خره چې وار ئې راوړے وی-

ټـنډکی:(ټـنډ-کی)اسم- واحد- مؤنث- وړه لښته- لښتکی- چوکه- (افغانستان)-

ټـنډکے:(ټن-ډهٔ-کے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- غټ منډ- ګرډے- د وړوکی قد خاوند چې کېږه ئې پړسېدلې وی-

ټـنډل:(ټن-ډل)مصدر متعدی- کلکول- سختول- مضبوطول- قوی کول-

ټـنډلے:(ټن-ډهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټـنډل-

ټـنډن:(ټن-ډن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټـنډل-

ټـنډنه:(ټن-ډهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټـنډل-

ټـنډو:(ټن-ډو)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)غټه کېږه لرونکے- پړسېدلے- (۲)کېږو- کېږور-

ټـنډوالے:(ټـنډ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پړسمن تیا- ځربښت- (۲)نېغ توب- کلانکاری-

ټـنډوزر:(ټن-ډوز)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ یو خاص قسم د چلغوزو پهٔ تودو شګو کښې وریتونه- (۲)انبار- امبار- دلۍ- (۳)شور زوږ- ویږ- غوغا- (۴)قتل عام- (۵)کټه کونه-

ټـنډوزرول:(ټن-ډو-ره-وُل)مصدر متعدی- (۱)پهٔ بټ کښې وریتول- نینې کول- (۲)دلی کول- کوټه کول- امبارول-

ټـنډوزرولے:(ټن-ډو-ره-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټـنډوزرول-

ټـنډوزرون:(ټن-ډو-ره-وُن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټـنډوزرول-

ټـنډوزرونکے:(ټن-ډو-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټـنډوزرول-

ټـنډوزرونه:(ټن-ډو-ره-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټـنډوزرول-

ټـنډوزربدل:(ټن-ډو-رې-دل)مصدر لازم- (۱)ورتېدل- نینې کېدل- د چنهو یا چلغوزو نینې کېدل- (۲)امبارېدل- دلی کېدل- کوټه کېدل-

ټـنډوزربدلے:(ټن-ډو-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټـنډوزربدل-

ټـنډوزربدن:(ټن-ډو-رې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټـنډوزربدل-

ټـنډوزربدنګ:(ټن-ډو-رې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټـنډوزربدل-

ټـنډوزربدنه:(ټن-ډو-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټـنډوزربدل-

ټـنډوزربدونکے:(ټن-ډو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټـنډوزربدل-

ټـنډوربدۀ:(ټن-ډو-رې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ټنډوربدل-

ټـنډول:(ټن-ډه-ول)مصدر متعدی- (۱)پړسول- پکول- پړول- (۲)زنا کول- پۀ ناجائزه طریقه بلاربول-

ټنډولے:(ټن-ډ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټنډول-

ټنډون:(ټن-ډ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټنډول-

ټنډونکے:(ټن-ډون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټنډل-

ټنډونکے:(ټن-ډ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټنډول-

ټنډونګ:(ټن-ډ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټنډول-

ټنډونه:(ټن-ډ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټنډول-

ټنډویک:(ټـنډ-ویک)اسم- واحد- مذکر- کاړبوزے- کاړبوزے- د کټې ګټې او د مسواکې ګټې تر مېنځه فاصله- (افغانستان)-

ټنډه:(ټن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- وچولے- تندے-

ټنډه:(ټن-ډه)اسم صفت- واحد- مؤنث- یخه- (م- هندی)-

ټنډه:(ټن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم سبزی- نباتاتی نوم د کوکر بیټا لېجینېریا (CUCURBITA LANGENARIA) د خاندان یوه سبزی-

ټـنډه:(ټن-ډه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)د ټنډ مؤنث- (۲)بلاربه- ډډه- پړسېدلې- بلاربه ښځه- زناکاره ښځه-

ټـنډه خره:(ټن-ډه-خره)اسم- واحد- مؤنث- ړنده خره- د ماشومانو یو قسم لوبه-

ټـنډه غـالبـوزه:(ټن-ډه-غال-بو-زه)اسم- واحد- مؤنث- سره مچی- سره بمبره- ډمبره-

ټـنډېدل:(ټن-ډې-دل)مصدر لازم- (۱)بلاربېدل- حامله کېدل- پکېدل- پړېدل- پړسېدل- امیدواره کېدل- (۲)مرورېدل- وګورئ ټنډ ۲-

ټنډېدن:(ټن-ډې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټنډېدل-

ټنډېدنګ:(ټن-ډې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټنډېدل-

ټنډېدنه:(ټن-ډې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټنډېدل-

ټنډېدونکے:(ټن-ډې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټنډېدل-

ټنډېدۀ:(ټن-ډې-دۀ)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ټنډېدل-

ټـنډېل:(ټن-ډېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرنګ- غار- تونل- (۲)د قلیانو مشر یا افسر- (م- انګریزی)-

ټـنډی:(ټن-ډی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لښته- چوکه- کونټې- ارمګے- چیکه-

ټنډے:(ټن-ډے)اسم صفت- ټنډ- چې یو لاس ئې پرېکړے شوے وی-

ټـنګ:(ټنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دروګه- دبدبه- رعب- آوازه- (۲)پړق- ځپېړه-

ټـنګ:(ټنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- کلک- سخت-

ټـنګ:(ټنګ)اسم صوت- واحد- مذکر- (۱)د ترنګ اواز- د څۀ څیز د ټنګولو آواز- د ساز آواز- (۲)د بدن نه د مقعد پۀ لار د بادو د خارجېدو آواز-

ټـنګا:(ټنګ-ګا)اسم صوت- ټنګار- د څیزونو د جنګېدو پرله پسې آواز-

ټنګار:(ټنګ-ګار)اسم صوت- وګورئ ټنګا-

ټنګاره:(ټنګ-ګا-ره)اسم- واحد- مؤنث- نوکاره- سکونډاره- چونګاره- جمع ټنګارې-

ټـنګ ټکور:(ټـنګ-ټ-کور)اسم- واحد- مذکر- د موسیقی محفل- سرود- مجلس- ساز آواز-

ټـنګـټـنګے:(ټنګ-ټنګ-کے)اسم تصغیر- چنچڼے- د ماشومانو د لوبو یو ټـنګ ټنګ کونکې آله- د سائېکل ټلی-

ټـنګ ټونګ:(ټنګ-ټونګ)اسم صوت- (۱)د سازونو آواز- موسیقی- (۲)د ځنو لوښو د یو بل سره د جنګېدلو آواز-

ټـنګره:(ټنګ-ره)اسم- واحد- مؤنث- ترازه- پره- ډکره- قتله- دړه- ټـنګی- ټـنګری- جمع ټنګرې-

ټنګری:(ټنګ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ټنګره-

ټنګسال:(ټنګ-سال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټکسال-

ټنګسال:(ټنګ-سال)اسم- واحد- مذکر- انتهائی نایاب-

ټـنګول:(ټنګ-ګ-ول)مصدر متعدی- (۱)د ساز آواز ایستل- د ټـنګ ټـنګ آواز ایستل- ترنګول- (۲)د ځنو لوښو یو بل سره جنګول- (۳)لۀ چا نه راز معلومول- لۀ چا نه خبرې ایستل- (۴)آزمائیل- (۵)وهل-

ټنګولے:(ټنګ-ګ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټنګول-

ټنګون:(ټنګ-ګ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټنګول-

ټنګونکے:(ټنګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټنګول-

ټنګونګ:(ټنګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټنګول-

ټنګونه:(ټنګ-ګ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټنګول-

ټنګه:(ټنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- روپۍ- پېسه- جمع ټنګې- (م- فارسی)-

ټـنګه:(ټنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د یوې زړې سکې نوم- (۲)ټکه- د دوو پېسو غټه سکه-

ټـنګه ټـته:(ټنګ-ګه-ټۀ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ټـنګ ټکور د پاره کلمه تحقیر- ټـنګ ټوت- (۲)سرونه سوررونه- د ټـنګ ټکور نه وړاندې د موسیقۍ آلې ټیک کۀنه- (۳)وړوکی کارونه- معمولی سودا-

ټـنګه رته:(ټنګ-ګه-رۀ-ته)متعلق فعل- ړنګه رته- ډیل- ځنډ- تاخیر- نکړه نکړه کونه- ایسارتیا- توقف- عذر- دلیل- انه بانه- پرېشانی-

ټنګه سرے:(ټنګ-ګه-س-رے)اسم صفت- وګورئ ټکه سرے-

ټنګهار:(ټنګ-هار)اسم صوت- وګورئ ټـنګا-

ټـنګېدل:(ټنګ-ګې-دل)مصدر لازم- ترنګېدل- (۱)د ساز د الاتو نه اواز وتل- (۲)د لوښیو خپلو کښې یو تر بله جنګېدل- (۳)ګړیال غږېدل-

ټنګېدلے:(ټنګ-ګې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټنګېدل-

زبر (خ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېښ (نو-کا-ره)، زبر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ه (ز-ره)، ۀ (ږو-بې-دۀ)

ټنګېدن:(ټـنـګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګوره ټنګېدل-

ټنګېدنګ:(ټنګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګوره ټنګېدل-

ټنګېدنه:(ټـنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوره ټنګېدل-

ټنګېدونکے:(ټنګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوره ټنګېدل-

ټـنګېدهٔ:(ټـنـګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګوره ټنګېدل-

ټنګې:(ټنګ-ګې)اسم- مؤنث- وګوره ټنګره-

ټنګې:(ټن-ګې)اسم- واحد- مؤنث- وګوره ټانچې-

ټنګے:(ټنګ-ګے)اسم صوت- ټنګ- ټنګار- ټنګا-

ټـنن:(ټ-نن)اسم صفت- (۱)ډرن- ټرن- ويرېدونکے- يرېدونکے- (۲)دروغژن-

ټنوېدل:(ټن-وې-دل)مصدر لازم- کونوېدل- ټمبدل- غېږدل-

ټنوېدلے:(ټن-وې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګوره ټنوېدل-

ټنوېدن:(ټن-وې-دن)حاصل مصدر- وګوره ټنوېدل-

ټنوېدنګ:(ټن-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګوره ټنوېدل-

ټنوېدنه:(ټن-وې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوره ټنوېدل-

ټنوېدونکے:(ټن-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوره ټنوېدل-

ټنوېدهٔ:(ټن-وې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګوره ټنوېدل-

ټـنه کار:(ټ-نه-کار)اسم- واحد- مذکر- يو کيميائي توکے- تنکار- نوشادر- امونيم کلورائيډ-

ټوا:(ټ-وا)اسم- کل شوے سر- کټ سر- پهٔ پاکۍ کل شوے سر-

ټوبخے:(ټو-بهٔ-خے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ شکو ډېرے- دَ شکو ټوبکے- (۲)غار- سوړه- سورے- (۳)ټتے- کټے- کنده- کندرې- ړوغل- ټوبکے- سوړه-

ټوبکے:(ټو-بهٔ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګوره ټوبخے-

ټوبه:(ټو-به)اسم- واحد- مؤنث- جبه- زوړه زمکه- تالاؤ- وسته- ډنډه زمکه- (م- هندي)-

ټوبے:(ټو-بے)اسم- واحد- مذکر- دَ شکو مغه غنډۍ چې سر ئې شين وي- (افغانستان)-

ټوپ:(ټوپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)اړتاؤ- ورت- جست- دانګ- دانګه- خېز- (۲)ډېرے- انبار-دلې- (۳)لويه ټوپۍ- (۴)دَ ربيلي شوي فصل دلې-

ټوپ:(ټوپ)اسم- واحد- مذکر- ټاپے نېټه- مقرر وخت- ټاکلے وخت- (افغانستان)-

ټوپ:(ټوپ)اسم- واحد- مذکر- ټيوب- دَ ربړ مغه پسته غنډې کولمه چې پهٔ ټائر کښې دننه اچولے او لهٔ بادو نه ډکولے شي- (م- انګريزي)-

ټوپازن:(ټو-پا-زن)اسم- واحد- مذکر- سپېرکنډه- کوپله- يوه مرغۍ چې لهٔ چرچڼي لويه وي او پهٔ سرې ئې ځنډے وي-

ټوپال:(ټو-پال)اسم- واحد- مذکر- چوپال- جاله- منخوله- خاله-

ټوپ ټپانے:(ټوپ-ټ-پا-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ منډې يا ټوپونو مقابله-

ټوپخن:(ټوپ-خن)اسم- واحد- مذکر- دَ خاورو ډېرے يا غنډۍ- وګوره ټوبخے-

ټوپژن:(ټوپ-ژن)اسم صفت- ټوپ کونکے- ټوپ وهونکے- ټوپ زن- ټوپي- ټوپ مار-

ټوپک:(ټو-پک)اسم- واحد- مذکر- تفنګ- ټوپک- يو آتشينه وسله چې کارتوس پکښې اېښودے شي او ډزې پرې کولے شي- رائفل- جمع ټوپکي/ټوپکونه- (م- فارسي)-

ټوپک ليچ:(ټو-پک-ليچ)اسم- واحد- مذکر- مغه لرګے چې دَ ټوپک دَ شپېلۍ لاندې لګېدلے وي- (افغانستان)-

ټوپکي:(ټو-پ-کي)اسم- جمع- مذکر- دَ ټوپک جمع- (۲)غورړدانګي- واړهٔ واړهٔ ټوپونه-

ټوپکۍ:(ټوپ-کۍ)اسم- مؤنث- دَ کاريز پټه برخه- (افغانستان)-

ټوپکے:(ټوپ-کے)اسم تصغير- وړوکے ټوپ-

ټوپل ۱:(ټو-پل)اسم- واحد- مذکر- (۱)شمله- څوکه- کرکره- (۲)دَ تاج طره (جوغه)- (۳)څوکه- سر- (۴)ټوپۍ-

ټوپل ۲:(ټو-پل)مصدر متعدي- (۱)خاورې غنډۍ کول- خاورې ډېرے کول- (۲)دنګل- ټوپ وهل- (افغانستان)-

ټوپلس:(ټوپ-لس)اسم- واحد- مذکر- دَ چيندرو دَ لوبې پېنځم کور-

ټوپ لندے:(ټوپ-لن-دے)اسم- واحد- مذکر- مغه ځائے چې ټوپ ترې وهلے شي-

ټوپلول:(ټوپ-ل-ول)مصدر متعدي- دنګول- ټوپ ورکول- څهٔ څيز پهٔ بره لړه کول-

ټوپلولے:(ټوپ-ل-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګوره ټوپلول-

ټوپلون:(ټوپ-ل-ون)حاصل مصدر- وګوره ټوپلول-

ټوپلونکے:(ټوپ-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوره ټوپلول-

ټوپلونګ:(ټوپ-ل-ونګ)حاصل مصدر- وګوره ټوپلول-

ټوپلونه:(ټوپ-ل-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوره ټوپلول-

ټوپلے:(ټو-پ-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ خاورو ډېرے-

ټوپلے:(ټو-پهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګوره ټوپل-

ټوپ مار:(ټوپ-مار)اسم صفت- ټوپ وهونکے- ټوپ زن- ورټونکے-

ټوپن:(ټو-پن)اسم- واحد- مذکر- دنيا- نړۍ- جهان- (افغانستان)-

ټوپن:(ټو-پن)حاصل مصدر- وګوره ټوپل- (مصدر)-

ټوپنانے:(ټوپ-نا-نے)اسم صفت- مسافر- پردېسي- جلاوطن-

ټوپنګ:(ټو-پنګ)حاصل مصدر- وګوره ټوپل-

ټوپنګرخے:(ټو-پن-ګر-خے)اسم صفت- سپلانے- سپل کونکے- سياح- (افغانستان)-

ټوپنه:(ټو-پهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوره ټوپل-

ټوپنے:(ټو-پۀ-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو يوه لوبه- (افغانستان)-
ټوپنے:(ټو-پۀ-نے)اسم صفت- سېلانے- سېل کونکے- سياح-
ټوپونکے:(ټو-پ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټوپل-
ټوپه:(ټو-په)اسم- واحد- مؤنث- دوه درۍ- دَ اتو سېرو پېمانه-
ټوپه:(ټو-په)اسم- واحد- مؤنث- معجزه- عجيب- عجيبه- حېرانونکے- کرامت-
ټوپي:(ټو-پي)اسم صفت- (۱)هوښيار- چالاک- شاطر- (۲)اردلي-
ټوپي:(ټو-پي)اسم صفت- ټوپ وهونکے- تېز- چالاک- ټوپ زن-
ټوپي ټخ:(ټو-پي-ټخ)اسم صفت- کلانکار- نخرې باز-
ټوپي ټق:(ټو-پي-ټق)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې ټوپۍ جوړوي- (۲)هېنګر- دېوال ګير-
ټوپۍ:(ټو-پۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)خولۍ- خوله- (۲)دَ غرۀ غنډۍ- (۳)دَ چېلم سر چې ځښونکے ځيز پکښې اچولے شي- (۴)يو قسم لوبه- (۵)ډېرے- امبار- کوټه- (۶)پټاکي- پټاقۍ- (۷)ډېران-
ټوپۍ ګل:(ټو-پۍ-ګل)اسم- واحد- مذکر- يو قسم دارو- دَ بابونې ګل- ګل بابونه- مروري- مروري-
ټوټار:(ټو-ټار)اسم- واحد- مذکر- ټوکيا- ټوکه- قېمه کش-
ټوټانګه:(ټو-ټانګ-که)اسم- ټوټياله- پياله- ټوټانګے-
ټوټانګے:(ټو-ټانګ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټوټانګه-
ټوټکه:(ټوټ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټوټه- کوډه- (۲)دَ مچوغنې خله- پټق- پټاق- کاسې- (۳)هغه علاج چې دَ تجربې په بنا کولے شي- (۴)هغه ډالۍ چې ناوې کره وړلے شي- (۵)دستور- رسم- (دَ پاره دَ مرض)- (۶)ترترۍ- شرشرۍ- چرچرۍ- جرجرۍ- دَ آتش بازۍ يو قسم-
ټوټکه چي:(ټوټ-که-چي)اسم صفت- وګورئ ټوټکه مار-
ټوټکه مار:(ټوټ-که-مار)اسم صفت- ټوټکې کونکے- ټوټه مار- ټوټکه چي-
ټوټکۍ:(ټوټ-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ کونډۍ سترګه- دَ زنګانۀ سترګه- (۲)دَ کناټي مړوکے- (۳)دَ لرګي کاسه- (۴)ټوټۍ-
ټوټکے:(ټوټ-کے)اسم- واحد- مذکر- ټوټے- دَ کناټي مړوکے- ساغړے- جمع ټوټکي-
ټوټکے:(ټو-ټ-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- بوړے- چيت پيت- چڼ زڼ-
ټوټل:(ټو-ټل)اسم- واحد- مذکر- جمع- ميزان- غنډ- ټول- (م- انګريزي)-
ټوټنکے:(ټو-ټن-کے)اسم- واحد- مذکر- توتنکے- تورلے- پترکے- بوره-
ټوټه:(ټو-ټه)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترازه- برخه- حصه- ټکړه- تيکه- ټوک- ځپر-پمبه- ځکالے- (۲)ټوکے- رخت- کپړه- (۳)پينه- (۴)پياله- ګلاس- جام- (۵)پېوند- (۶)سرنا-
ټوټه ټوټه:(ټو-ټه-ټو-ټه)اسم صفت- واحد- مؤنث- ټوکړه ټوکړه- ټس نس- ترمې ترمې- ذره ذره- رنجې رنجې- پرزکې پرزکې- جمع ټوټې ټوټې-
ټوټۍ:(ټو-ټۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)صفت- ستائينه- (۲)غندنه- بد وئينه- (افغانستان)-
ټوټي پل:(ټو-ټي-پل)اسم- واحد- مذکر- دَ پرۍ نه جوړ ټال- خانګو-
ټوټياله:(ټوټ-يا-له)اسم- واحد- مؤنث- ټوټانګه- پياله-
ټوټيالۍ:(ټوټ-يا-لۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کنډول- جام- پېمانه- دَ شرابو ځښلو لوښے- وړه پيالۍ چې قهوه پکښې ځښلے شي-
ټوټېل:(ټو-ټېل)اسم- واحد- مذکر- ټيټارے- ټيغکه- يوه مرغۍ-
ټوټۍ:(ټو-ټۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ټوټکۍ- دَ لرګي کاسه- (۲)دَ اُبو دَ نلکې هغه ځاے چې اُبۀ پرې آزادولے او بندولے شي- دَ نلکې سر- ځښکورے- (۳)ټوکړه- (۴)دَ رسۍ وړه ټوکړه- دَ پرۍ وړه برخه-
ټوټے:(ټو-ټے)صفت- پوټے- پيځانے- چوړ- ريزه- پوټسکے- خځوځکے-
ټوټے:(ټو-ټے)اسم- واحد- مذکر- صندوق- سوندک- (افغانستان)-
ټوټے ټوټے:(ټو-ټے-ټو-ټے)صفت- ريز مريز- ذرې ذرې- ټوکړې ټوکړې- ډرکړې ډرکړې-
ټوډي:(ټو-ډي)اسم صفت- خوشامندګر- چاپلوس- چمچه- په سياسي اصطلاح کښې هغه ځوک چې دَ حکومت خوشامندې کوي- (م- انګريزي)-
ټور:(ټو-ور)اسم- واحد- مذکر- دوره- ګشت- (م- انګريزي)-
ټورنمنټ:(ټور-نَ-منټ)اسم- واحد- مذکر- دَ لوبو غونډه- دَ لوبو مقابله- (م- انګريزي)-
ټوري:(ټو-ري)اسم- واحد- مذکر- دَ برطانيې دَ قدامت پسند سياسي جماعت پخوانے نوم- (م- انګريزي)-
ټوري:(ټو-ري)تابع مهمل- دَ ټکي تابع مهمل-
ټورېسټ:(ټو-ر-رېسټ)اسم- واحد- مذکر- سياح- دَ نړۍ سېل کونکے- (م- انګريزي)-
ټوري:(ټو-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- اټارۍ- بالاخانه- برج-
ټورے:(ټو-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ جوارو زرګے وړے-
ټورے:(ټو-رے)اسم- واحد- مذکر- چلمچي- دَ لاس وينځلو لوښے- لاس وينځونے- لاس وينځونکے-
ټوړي:(ټو-ړي)اسم- واحد- مذکر- (۱)چاړا- ترترے- (۲)دَ يوې راګنۍ نوم-
ټوړي توب:(ټو-ړي-توب)اسم- واحد- مذکر- لګنت- چاړاتوب- (افغانستان)-
ټوس:(ټوس)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وروست- ټسن- (۲)دَ ټس تابع مهمل-
ټوسان:(ټو-سان)اسم- جمع- مذکر- هغه وازره چې دَ ولۍ په شان غونډه از ګردې وي- (افغانستان)-
ټوسټ:(ټوسټ)اسم- واحد- مذکر- دَ ډبل روټۍ ټوکړه چې سره کړے شوې وي- توس- (م- انګريزي)-
ټوسه:(ټو-سه)اسم- واحد- مؤنث- اُړے- دَ لرګي يوه ټوټه چې ماشومان پرې لوبې کوي او په يوه مخصوصه لوبه کښې پکار راځي-
ټوسے:(ټو-سے)اسم- واحد- مذکر- ټيک- ټيقے- دَ مردکو په لوبه کښې هغه

غټ مردکے چې نور پرې ویشتلے شي- ارغوند-

ټوقا:(ټو-قا)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ټوپ وهونکے چینجے چې غصل خوري-

ټوقړ:(ټو-قړ)اسم صفت- واحد- مذکر- بوډا سړے- وګورئ ټاټر-

ټوقمار:(ټوق-مار)اسم صفت- ټوقي- هغه څوک چې د ټوقو خبرې کوي- ټوقي کونکے- خوش طبع- ملنډې کونکے- مسخره باز-

ټوقه:(ټو-قه)اسم- واحد- مؤنث- مسخره- ملنډه- بوزې- پنډته-

ټوقه ټقاله:(ټو-قه-ټ-قا-له)اسم- مؤنث- ملنډه- چرلنډه- ټوقه وشته- ګپ شپ- جمع ټوقې ټقالې-

ټوقي:(ټو-قي)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټوقمار-

ټوک ۱:(ټوک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه ټوکے چې تنګ تنګ ووبدلے شوے وي- (۲)تریو- (۳)ستغ- (۴)اعتراض- ټوکنه- (۵)مهین- هوار- (۶)خیر-

ټوک ۲:(ټوک)اسم- واحد- مذکر- (۱)حصه- ټوټه- برخه- (۲)د پوړې ټوکړه- څپر-

ټوکا ۱:(ټو-کا)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم چینجے چې غصل وهي- ټوقا- (۲)غټه چاړه چې غوښه یا ګیاه پرې کوتره کولے شي- ټوکیا- مهکپ- ساتول- کټمیره- (افغانستان)-

ټوکا ۲:(ټو-کا)اسم- واحد- مذکر- زرغنېدنه- ټوکېدنه- د فصل سر وهنه- فصل ټوکېدنه-

ټوکار:(ټو-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)کرکه- نفرت- (۲)چاړه- خنجر- ټوکا-

ټوکان:(ټو-کان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټاپوړې-

ټوک ټوک:(ټوک-ټوک)اسم صفت- مذکر مؤنث- ټوټې ټوټې- ذرې ذرې-

ټوک خور:(ټوک-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- سوالګرے- خیرمار-

ټوکر ۱:(ټو-کر)اسم- واحد- مذکر- قېد- پنجره- ټوکړ-

ټوکر ۲:(ټو-کر)اسم صفت- واحد- مذکر- ټوتر- ټپتر- عمرخورلے- بوډا- زوړ-

ټوکر ۳:(ټو-کر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټوکره- ټوټه- کپړه- ټکره- (۲)نوع- جنس- نوعے-

ټوکر ټوکر:(ټو-کر-ټو-کر)اسم صفت- مذکر/مؤنث- ذرې ذرې- ټوټې ټوټې- ټکړې ټکړې-

ټوکرکے:(ټو-کر-کے)اسم تصغیر- مذکر- د بورۍ ټکره- ټوکرے- وړه بورۍ- ټکورے- جمع ټوکرکي-

ټوکروټې:(ټوک-رو-ټې)اسم تصغیر- واحد/جمع- مؤنث- شکروټې- وړه شکرۍ- ټوکربکوټې- ټوکریکۍ-

ټوکره:(ټوک-ره)اسم- واحد- مؤنث- غټه ټوکرۍ- لویه شکرۍ-

ټوکره:(ټوک-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټکره-

ټوکربکۍ:(ټوک-رب-کۍ)اسم تصغیر- وګورئ ټوکروټې-

ټوکرېبل:(ټوک-رې-بل)مصدر متعدي- ټوټې ټوټې کول- ټوک ټوک کول- (افغانستان)-

ټوکرېبلے:(ټوک-رې-بهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټوکرېبل-

ټوکرېبن:(ټوک-رې-بن)حاصل مصدر- وګورئ ټوکرېبل-

ټوکرېبنګ:(ټوک-رې-بنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټوکرېبل-

ټوکرېبنه:(ټوک-رې-بهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټوکرېبل-

ټوکرېبونکے:(ټوک-رې-بون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټوکرېبل-

ټوکرۍ:(ټوک-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- شکرۍ- څکے- کاره- ټوکور- ټوکره-

ټوکرے:(ټوک-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)کپړه- رخت- (افغانستان)- (۲)ټیکرے- څادر- پړونے- پټکے-

ټوکړ:(ټو-کړ)اسم- واحد- مذکر- ټوکر- قېد- پنجره-

ټوکړه:(ټوک-ړه)اسم- واحد- مذکر- ټوټه- کپړه- ټکره-

ټوک زوت:(ټوک-زوت)صفت- طاق جفت- بې جوړه او پهٔ جوړه- یوه لوبه-

ټوکل:(ټو-کل)مصدر متعدي- کرپول- کرول- پهٔ خلهٔ کښې چوپل- کرچول- پهٔ غاښونو پرېکول- پوټل-

ټوکل:(ټو-کل)مصدر متعدي- (۱)غندل- اعتراض کول- رټل- کوټل- (۲)د چا خبره ناڅا کول- پهٔ خبرو کښې راډنګل- (۳)څېرل- غڅول- پرېکول-

ټوکلے:(ټو-کهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټوکل-

ټوکلے:(ټوک-لے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ لاس ووډلے څېز- پهٔ لاسو کنډلے څېز-

ټوکلے:(ټو-کهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټوکل-

ټوکمار:(ټوک-مار)اسم صفت- وګورئ ټوقمار-

ټوکمار:(ټوک-مار)اسم صفت- هغه څوک چې پهٔ کوڅو یا بازار کښې ټوکې خرڅوي-

ټوکن:(ټو-کن)حاصل مصدر- وګورئ ټوکل-

ټوکن:(ټو-کن)حاصل مصدر- وګورئ ټوکل-

ټوکند:(ټو-کند)اسم صفت- واحد- مذکر- روانېدونکے- تلونکے- پهٔ تلو کښې-

ټوکنه:(ټو-کهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټوکل-

ټوکنه:(ټو-کهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټوکل-

ټوکور:(ټو-کور)اسم- واحد- مذکر- ټوکر- لویه ټوکرۍ- کاره-

ټوکورکے:(ټو-کور-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټوکروټې-

ټوکول:(ټو-کهٔ-ول)مصدر متعدي- زرغنول- شنهٔ کول- راخېژول-

ټوکولے:(ټو-ک-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټوکول-

ټوکون:(ټو-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ ټوکول-

ټوکونکے:(ټو-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټوکول-

ټوکونکے:(ټو-کون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټوکل-

ټوکونکے:(ټو-کُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټوکل-
ټوکونګ:(ټو-کُ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټوکول-
ټوکونه:(ټو-کُ-وڼه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټوکول-
ټوکونے:(ټو-کو-نے)اسم تصغير- مذکر- هغه روټۍ چې د ټيکالي پخولو نه پس د خميرې نه پخولے شي- ککوړے- زړه پړوې- وړه ټيکلۍ-
ټوکه:(ټو-که)اسم- واحد- مؤنث- ټوقه- مسخره- پيشاړه-
ټوکه:(ټُو-که)اسم- واحد- مؤنث- هغه غوا چې د لوشلو په وخت کښې پښې تښتوي- ټيکه غوا- ټکنۍ غوا- غله غوا-
ټوکه:(ټُو-که)حاصل مصدر- وګورئ ټوکېدل-
ټوکه:(ټُو-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د کاريز کوهے- (۲)يو قسم چرچڼه-
ټوکه:(ټو-که)اسم- واحد- مؤنث- ټوکيا- ټوکا- قيمه کش-
ټوکه:(ټُو-که)اسم- واحد- مؤنث- سورے- پز- څير- چير-
ټوکي:(ټو-کي)اسم صفت- واحد- مذکر- ټوکي خرڅونکے- د ټوکو سوداګر- بخاز- بحاز- بجازی-
ټوکي:(ټو-کي)اسم صفت- واحد- مذکر- ټوقمار- ټوقي-
ټوکيا:(ټو-کيا)اسم صفت- واحد- مذکر- هکپ- ټوکا- ټوکيه- ټوکه- ساتول- کټميره-
ټوکې بوکې:(ټو-کې-بو-کې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ ټوکې موکې-
ټوکې ټپاکې:(ټو-کې-ټ-پا-کې)اسم- جمع- مؤنث- ټوقې ټقالې- ټوقې وشتې-
ټوکې ټکالې:(ټو-کې-ټ-کا-لې)اسم- جمع- مؤنث- ټوقې ټقالې- خندا خوشحالي-
ټوکې موکې:(ټو-کې-مو-کې)اسم- جمع- مؤنث- ټوقې ټقالې- ټوکې بوکې- ګپ شپ- مسخرې- ټوکې وشتې-
ټوکې وشتې:(ټو-کې-وَش-تې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ ټوکې موکې-
ټوکېدل:(ټُو-کې-دَل)مصدر لازم- (۱)زرغنېدل- د فصل سر وهل- تېغ راوتل- (۲)د زړېدو له کبله د کپړې دوړېدل-
ټوکېدلے:(ټُو-کې-دَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټوکېدل-
ټوکېدن:(ټُو-کې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ټوکېدل-
ټوکېدنګ:(ټُو-کې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټوکېدل-
ټوکېدنه:(ټُو-کې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټوکېدل-
ټوکېدونکے:(ټُو-کې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټوکېدل-
ټوکېده:(ټُو-کې-دَه)حاصل مصدر- د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ټوکېدل-
ټوکے:(ټو-کے)اسم- واحد- مؤنث- ټوکا- چاړه- هکپ- ټوکيا-
ټوکے:(ټُو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)کپړه- رخت- ټوټه- ټوکر- (۲)يو تور رنګے بوټے چې پلنې پاڼې لري او واړه ګلونه کوي-
ټوکے ټوکے:(ټو-کے-ټو-کے)اسم- (۱)ټوک ټوک- څېر څېر- هېې هېې- توکے توکے- (۲)څاڅکے څاڅکے- قطره قطره- غټې غټې- (۳)ادوم ادوم- څانګ څانګ- ونړۍ ونړۍ-
ټول:(ټُول)اسم- واحد- مذکر- څادر- تول- سورسانے- يو قسم ټوکر- کپړه-
ټول:(ټول)اسم صفت/متعلق فعل- (۱)درست- چربور- تمام- کُل- کلهم- تمامي- واړه- پوره- (۲)ټولے- پله- غُنډه- مجلس- محفل- (۳)راغنډ- يوځاې- خربټ-
ټول:(ټُول)اسم- واحد- مذکر- سټول- وړوکے مېز- (م- انګريزي)-
ټولتون:(ټول-تون)اسم- واحد- مذکر- د غونډېدو ځاې- (افغانستان)-
ټول ټال:(ټول-ټال)صفت- (۱)د هر څۀ سره- تماماً- همه واړه- مکمل- خلاص- پوره- تمامي- (۲)د ټول هغه حالت چې ويونکے پکښې د خپل نيشتي معنٰی ورکول غواړي لکه "ماسره ټول ټال لس روپۍ دي"-
ټولګر:(ټول-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- سوالګر- ټوک غښتونکے- جمع ټولګري-
ټولګي وال:(ټول-ګي-وال)اسم صفت- جمع- مذکر- هم جماعت- د يوه ټولګي سره تعلق لرونکي- (افغانستان)-
ټولګے:(ټول-ګے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وړوکے ټولے- جماعت- پله- (۲)صنف- د سکول جماعت- کلاس- جمع ټولګي-
ټولمشر:(ټول-مَه-شر)اسم صفت- واحد- مذکر- سرغندے- لوئ مشر- سربراه- (افغانستان)-
ټولمشري:(ټول-مَه-شَه-ري)اسم- واحد- مذکر- امارت- لويه مشري- (افغانستان)-
ټولنواله:(ټو-لَن-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- سوسياليزم- جامعه ګرائي- اشتراکيت- (افغانستان)-
ټولنه:(ټو-لَه-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غُنډه- مجلس- اجتماع- مجمع- جرګه- مرکه- معاشره- (۲)انجمن- (افغانستان)- (۳)چنده- جمع- خزانه- پېسې غنډونه-
ټولواک:(ټول-واک)اسم- واحد- مذکر- بادشاه- حکومت کونکے- مختيار- کل اختياره- ټولواکے- (افغانستان)-
ټولواکي:(ټول-وا-کي)اسم- واحد- مذکر- سلطنت- بادشاهي- کل اختياري- (افغانستان)-
ټولواکے:(ټول-وا-کے)اسم- واحد- مذکر- کل اختيار بادشاه- پکټېټر- آمر- ټولواکے- د کل اختيار مالک- (افغانستان)-
ټولواکي:(ټول-وا-کي)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټولواکي-
ټولواکے:(ټول-وا-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټولواکے-
ټولول:(ټو-لَه-وَل)مصدر متعدي- يو ځاې کول- راغنډول- جمع کول- ګرډول- بوژول-
ټولون:(ټو-ل-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ټولول-
ټولونکے:(ټو-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټولول-

ټولونګ:(ټو-لَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټولول-
ټولونه:(ټو-لَ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټولول-
ټوله:(ټو-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ ټول مؤنث- تمامه- غونډه- ممه- واړه- کرده-
ټوله:(ټو-له)اسم- واحد- مؤنث- ګدائي- درويزه- غُښتنه- غُښته- سوال کونه-
ټولی ټولی:(ټو-لی-ټو-لی)اسم (مرکب)- ډلې ډلې- جوړې جوړې- پيڼډې پيڼډې- ټپې ټپې-
ټولېدل:(ټو-لې-دَل)مصدر لازم- ګرډېدل- غونډېدل- يو ځایٔ کېدل- جمع کېدل-
ټولېدلے:(ټو-لې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټولېدل-
ټولېدن:(ټو-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ټولېدل-
ټولېدنه:(ټو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټولېدل-
ټولېدونکے:(ټو-لې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټولېدل-
ټولېدهٔ:(ټو-لې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ټولېدل-
ټولی:(ټو-لی)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګورئ ټولے-
ټولے:(ټو-لے)اسم- واحد- مذکر- جماعت- ډله- غونډه- ټولي-
ټولے ټالے:(ټو-لے-ټا-لے)اسم (مرکب)- ډله- پره جنبه- ګروپ-
ټوم:(ټُوم)اسم- واحد- مذکر- (۱)لمسون- وچتونه- پارونه- تحريک- (۲)مشوره- مصلحت- اماده کوُنه-
ټومب:(ټومَب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټومبنه- (۲)تحريک- لمسون- (۳)ستن وهنه- پهٔ ستن سره دَ ازغی ويستنه- (۴)سودا- فکر- (۵)تلوسه- دَ پيو لوشلو پهٔ وخت پهٔ سر يا سوُک غلانځې ته زور ورکونه-
ټومبښ:(ټوم-بښ)اسم- واحد- مذکر- دَ سرو يا ډمبرو مچو سېل-
ټومبکه:(ټوم-بهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ شونټې دَ تېلو (رانزړو) دَ پاره کنستلے شوے جوغړے- وګورئ ټمبکه-
ټومبل:(ټوم-بَل)مصدر متعدی- (۱)ننه وېستل- چوکه کول- ښخول- کېښودل- (۲)سکونډل- ټونګل- راپارول-
ټومبلے:(ټوم-بهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټومبل-
ټومبن:(ټوم-بَن)حاصل مصدر- وګورئ ټومبل-
ټومبنه:(ټوم-بهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټومبل-
ټومبولی:(ټوم-بو-لی)اسم- واحد جمع- مؤنث- پهٔ اُبو کښې ختکېدلې چنې- ګونګړی- چړلې-
ټومبونکے:(ټوم-بُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټومبل-
ټومبه:(ټوم-به)اسم صفت- واحد- مؤنث- ټمبه- پړسېدلې يا ډډه خېټه-
ټومبينے:(ټوم-بی-نے)اسم- واحد- مذکر- خلال- دَ غاښ ډکے-
ټومبېدل:(ټوم-بې-دَل)مصدر لازم- (۱)ښخېدل- چوکه کېدل- چخېدل- (۲)پام راګرځېدل- ټونګېدل- سکونډېدل- تحريک کېدل- (۳)پړمېدل- ډډېدل-
ټومبېدلے:(ټوم-بې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټومبېدل-
ټومبېدن:(ټوم-بې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ټومبېدل-
ټومبېدنه:(ټوم-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټومبېدل-
ټومبېدونکے:(ټوم-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټومبېدل-
ټومبېدهٔ:(ټوم-بې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ټومبېدل-
ټومبی:(ټوم-بی)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګورئ بړبوکی-
ټومری:(ټوم-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تومری- (افغانستان)-
ټومه:(ټو-مه)اسم- واحد- مؤنث- کورنی- خاندان- ټونګ- نسل-
ټونټيل:(ټون-ټيل)اسم- واحد- مذکر- (۱)ابرق- (۲)ړينګ- يو قسم مارغهٔ چې پښې او پنډې ئې نرۍ نروچکې وی او ښهٔ لوړ دنګ وی-
ټونټيل:(ټون-ټيل)اسم صفت- واحد- مذکر- کوړ- کوږ ووږ- جُغړی- کوږ راکوږ- کوږ کيږ-
ټونډ:(ټُونډ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ جوارو کبډے- (۲)ټانټې- دَ جوارو ټانټې- (۳)منجونيا- راغنډ- راکوږ- ټونډمونډ-
ټونډمونډ:(ټُونډ-مُونډ)اسم صفت- وګورئ ټونډ-
ټونډينه:(ټون-ډی-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ جوارو وړے-
ټونډېدل:(ټون-ډې-دَل)مصدر لازم- (۱)مرورېدل- خفه کېدل- (۲)مړاوے کېدل- راخوړندېدل- نسکورېدل- کږېدل-
ټونډېدلے:(ټون-ډې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټونډېدل-
ټونډېدن:(ټون-ډې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ټونډېدل-
ټونډېدنګ:(ټون-ډې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټونډېدل-
ټونډېدنه:(ټون-ډې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټونډېدل-
ټونډېدونکے:(ټون-ډې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټونډېدل-
ټونډېدهٔ:(ټون-ډې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ټونډېدل-
ټونګ:(ټُونګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټونګاره- څکونډاره- چونډی- (۲)سودا- فکر- تلوسه- (۳)مصلحت- مشوره-
ټونګ:(ټونګ)اسم- واحد- مذکر- نسل- خاندان- کورنی-
ټونګ:(ټونګ)اسم- واحد- مذکر- نشتر- دَ رګ وهلو آله- دَ پرهر ځيرولو آله-
ټونګاره:(ټُونګ-ګا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نوکاره- څکونډاره- چونډی- چونګاره- (۲)زيږې- ښکنځل- کنځل-
ټونګره:(ټُونګ-ګ-ره)اسم- واحد- مؤنث- ټونګه- مښوکه-
ټونګرل:(ټُونګ-رَل)مصدر متعدی- (۱)بېدارول- ويښول- پام راړول- متوجه کول- پهٔ ګته سوخولو ورو غندې اشارت کول- (۲)ټونګه اچول-
ټونګرلے:(ټونګ-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټونګرل-
ټونګرن:(ټونګ-رَن)حاصل مصدر- وګورئ ټونګرل-
ټونګرنه:(ټونګ-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټونګرل-

ئ (څی-رل)، ی (هې-ره-وَل)، ی (پيا-لی)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ټونګرونکے:(ټونګ-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټونګرل-
ټونګرېيل:(ټونګ-رې-يل)مصدر متعدی- (۱)نوکاره لګول- ټونګاره لګول-
چونډۍ لګول- ځکونډل- (۲)پهٔ پټه تاوان رسوّل- (۳)پهٔ ټونګه وهل-
(۴)غصه کېدل- پاروّل- (۵)ښکنځل کوّل- زيږې کوّل- کنځل کول-
ټونګرېيلے:(ټونګ-رې-يهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټونګرېيل-
ټونګرېين:(ټونګ-رې-ين)حاصل مصدر- وګورئ ټونګرېيل-
ټونګرېينه:(ټونګ-رې-يهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټونګرېيل-
ټونګرېيونکے:(ټونګ-رې-يون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټونګرېيل-
ټونګل:(ټُونګ-ګل)مصدر متعدی- (۱)ټونګه ورکوّل- (۲)څوک پهٔ اشاره څهٔ ته
متوجه کوّل-
ټونګلے:(ټُونګ-ګهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټونګل-
ټونګن:(ټُونګ-ګن)حاصل مصدر- وګورئ ټونګل-
ټونګنه:(ټُونګ-ګهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټونګل-
ټونګوره:(ټُونګ-ګو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اينګه- انګه- هغه ښځه چې دَ
ناوې سره دَ ناوې لهٔ کوره د ناوې سخرانې کره ځی-
ټونګونکے:(ټُونګ-ګون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټونګل-
ټونګه:(ټُونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ګُټې بند- (۲)دَ پښې تلے-
(۳)مښوکه- (۴)ټونګاره- (۵)چېږ- بلوسه-
ټونګه ټټ:(ټونګ-ګه-ټټ)اسم صفت- تحقيری کلمه- ټونګه بګېل- هغه چرګ
يا مرز چې ټونګه نيمه جنګ کوی او تښتی-
ټونه:(ټو-نه)اسم- واحد- مؤنث- ټوټکه- منتر- جادو- کوډه- تعويذ- جمع
ټونې- (م- هندی)-
ټونه مار:(ټو-نه-مار)اسم صفت- ټونې کوَنکے- (م- هندی)-
ټوېدل:(ټ-وې-دل)مصدر لازم- څڅېدل- ټڅېدل- څاڅې څاڅې کول- ټنوېدل-
کنوېدل-
ټوېدلے:(ټ-وې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټوېدل-
ټوېدن:(ټ-وې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټوېدل-
ټوېدنه:(ټ-وې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټوېدل-
ټوېدونکے:(ټ-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټوېدل-
ټوېدهٔ:(ټ-وې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه-
وګورئ ټوېدل-
ټی اے:(ټی-اے)اسم- واحد- مؤنث- دَ ټربولنګ الاونس مخفف- سفر خرچه-
(م- انګريزی)-
ټی بی:(ټی-بی)اسم- واحد- مذکر- ټيوبرکلوزز- نرے رنځ- (م- انګريزی)-
ټی پارټی:(ټی-پار-ټی)اسم- واحد- مؤنث- دَ چايو دعوت- دَ چايو بلنه-
ټی ټی:(ټی-ټی)اسم- واحد- مذکر- دَ ريلوے پهٔ محکمه کښې هغه سړے چې
ټيکټونه ګوری- (م- انګريزی)-
ټيان:(ټی-يان)اسم صفت- ړوان- بې کاره او بې خونده سړے-

ټيپ:(ټيپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سيمټو لېټی سره دَ خښتو دَ دېوال دَ
چوندونو دَ بندولو کار- (۲)پهٔ جنس کښې دَ تيار فصل پېشګی قيمت-
ټيپاک:(ټی-پاک)اسم- واحد- مذکر- ټوپک- تفنګ- دَ ټوپک عاميانه لهجه-
ټيپ ټاپ:(ټيپ-ټاپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښانست- ښکلا- ړول- سينګار-
ټيپ ټپاس- ټيس ټپاس- (۲)خان ښائل-
ټيپ ټپاس:(ټيپ-ټ-پاس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيپ ټاپ-
ټيپکی:(ټيپ-کی)اسم- مؤنث- بڼ- چې چرته کښې ونې وی-
ټيپه:(ټی-په)اسم صفت- هغه ښځه چې بې قيمته يا بې بدله چا ته سپارلے
شوی وی-
ټيپی:(ټی-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ججوره- ججيره- دَ مارغانو
معده- (۲)يو قسم کشيده-
ټيپی:(ټی-پی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ځپياکه-
ټيپی:(ټی-پی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټوپی-
ټيټ:(ټيټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کوز- ښکته- (۲)کوږ- (۳)چيت
پيت- (۴)مندرے- (۵)ملامته- پړ-
ټيټارے:(ټی-ټا-رے)اسم- واحد- مذکر- ټيغکے- ټيغے- يوه مرغۍ چې
ړنډونو کښې کښيني او باران غواړی-
ټيټاکه:(ټی-ټا-که)اسم- واحد- مؤنث- ازغکے- اغزکے- يو ازغن بوټے-
نباتاتی نوم اسپېريګس ګرېسيلس (ASPARIGUS GRACILIS)-
ټيټاکی:(ټی-ټا-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- زمکه- دوتر- جائيداد-
ټيټاکے:(ټی-ټا-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټاکی-
ټيټال:(ټی-ټال)اسم- واحد- مذکر- (۱)چاپلوسی- غوړه مالی- بوټ پاکی-
خوشامندی- (۲)پستی- (۳)مکر- فرېب- ټګی- چل- منافقت- (مصدرونه
کوّل/خوړل)- جمع ټيټالونه-
ټيټالے:(ټی-ټا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوشامندګر- چاپلوس-
چلولی- ټګ- چلباز- غوړه مال- دوکه باز- فرېب کار-
ټيټ پاس:(ټيټ-پاس)متعلق فعل- (۱)لام لباس- خوشمانده- (۲)داررومدار-
(۳)ښکته پورته- تعلق-
ټيټ پيټ:(ټيټ-پيټ)اسم صفت- واحد- مذکر- ړېر ټيټ سړے- ړېر مندرے-
غنډے-
ټيټتوب:(ټيټ-توب)اسم- واحد- مذکر- ټيټوالے- کوزوالے-
ټيټ ټټارے:(ټيټ-ټی-ټا-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټارے-
ټيټخ:(ټی-ټخ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټارے-
ټيټ سترګے:(ټيټ-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- شرمېدلے- شرمنده-
کوزسترګے- ملامته-
ټيټ سرے:(ټيټ-س-رے)اسم- واحد- مذکر- بد ځناور- خنزير- خربشونے-
سرکوزے-
ټيټسه:(ټی-ټهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- د جوارو توقه- د جوارو توکه- شتی-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکوڼ)، ه(ز-ړه)، هٔ(پو-ښې-دهٔ)

ټيټغه:(ټی-ټهٔ-غه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټيټارے-

ټيټغے:(ټی-ټهٔ-غے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټارے-

ټيټک:(ټی-ټک)اسم- واحد- مذکر- تنکی منډوانه چې خلق ئ دَ سبزئ پهٔ طور پخوي-

ټيټکه:(ټی-ټ-که)اسم- واحد- مؤنث- لړمه- تمبکه- يو قسم بيماري چې دَ وينې لهٔ خرابئ نه پيدا کيږي-

ټيټکۍ:(ټی-ټ-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ټوپکۍ- ټوپونه- دَ حلالولو نه پس ټوپونه- ترپکۍ- غرځېدنه- څېزکۍ- (۲)ځلۍ ځلۍ- کوشش- زيار- زحمت-

ټيټکی:(ټی-ټ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ ټيټکی مؤنث- (۲)دَ زنګانهٔ سترګه- کونډۍ- سترګې- (وړومبی معنٰی کښې صفت)-

ټيټکے:(ټی-ټ-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټيټ قدے- منډرے- چيټکے- غنډے- خنډے- ټمپرکے- ټمبرکے- ټمبرے- اوړوے- لوبشتکے- پستکے- پټکے- چيت- ټيټ پيټ- پټے- کونډکے- لنډے- پيشتکے-

ټيټن:(ټی-ټن)اسم- واحد- مذکر- دَ ځرمښکی يو قسم-

ټيټوالے:(ټيټ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټتوب-

ټيټول:(ټی-ټه-ؤل)مصدر متعدی- (۱)ښکته کول- کوزول- لاندې کول- (۲)کړول- راټڅې کول- (۳)کمزورے کول- سپکول-

ټيټون:(ټی-ټ-ؤن)حاصل مصدر- وګورئ ټيټول-

ټيټونکے:(ټی-ټ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټيټول-

ټيټونګ:(ټی-ټ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټيټول-

ټيټونه:(ټی-ټ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټيټول-

ټيټه:(ټی-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ټيټ مؤنث- (۲)بدبختي- بدقسمتي- (۳)کمزوري خبره- (وړومبی معنٰی کښې صفت)-

ټيټه پيټه:(ټی-ټه-پی-ټه)اسم- واحد- مؤنث- يارانه دوستانه- ناسته پاسته- ډېر زيات خوشحالېدهٔ- (چا سره ټيټه پيټه جوړونه- منښدهٔ- عاشق کېدهٔ- راشه درشه- کډون)-

ټيټے:(ټی-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ خوراک مغه لوښے چې دَ لرګی جوړ وي-

ټيټېدل:(ټی-ټې-دل)مصدر لازم- (۱)کوزېدل- ښکته کېدل- (۲)سپکېدل- کمزورے کېدل- (۳)پړ کېدل- شرمېدل-

ټيټېدن:(ټی-ټې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ټيټېدل-

ټيټېدنګ:(ټی-ټې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټيټېدل-

ټيټېدنه:(ټی-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټيټېدل-

ټيټېدونکے:(ټی-ټې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټيټېدل-

ټيټېدهٔ:(ټی-ټې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ټيټېدل-

ټيټۍ:(ټی-ټۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)کنډولے- دَ خاورو کاسه- (۲)ټوپۍ-

ټيټي:(ټی-ټي)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- قبي- کبي- دَ ټيټے مؤنث-

ټيټے:(ټی-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- کب لړونکے- کبے- شاټيټے- قبے- ګوبا- مؤنث ټيټي-

ټيچر:(ټی-چر)اسم- واحد- مذکر- اُستاذ- معلم- مدرس- (م- انګريزي)-

ټيچرۍ:(ټی-چهٔ-رۍ)اسم- مؤنث- اُستاذې- معلمې- مدرسې- (م- انګريزي)-

ټيخے:(ټی-خے)اسم- واحد- مذکر- ټوخے-

ټيز:(ټيز)اسم- واحد- مذکر- دَ کښې نه دَ بادو دَ خارجېدو آواز- تيز- ټغ- ټنګ- پړوړيا- ګوز-

ټيزاوڼ:(ټی-زا-وڼ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټيزن- تيزن- ټړن- ټيزمار- ټيزو- ټړو- ګوزاوڼ- (۲)وېرېدونکے- ډړن- ويرندوکے-

ټيزټيزکۍ:(ټيز-ټی-زه-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- يوه حشره چې دَ نيوو سره په تلی کښې ټيزونه اچوي-

ټيزمار:(ټيز-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټيزاوڼ-

ټيزن:(ټی-زن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ تيزاوڼ-

ټيس پيس:(ټيس-پيس)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)سست- بېکاره- پست- (۲)آرام طلبه-

ټيس ټپاس:(ټيس-ټ-پاس)متعلق فعل- وګورئ ټيپ ټپاس-

ټيستے:(ټيس-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- چيت- چيتکے- ټيټ قدے- منډرے-

ټيسکی:(ټيس-کی)اسم- سست غشے ويشتنه-

ټيغ:(ټيغ)اسم- واحد- مذکر- ټيق- شينولے- مړدکے- ارغند- ارغه- تيک- مغه غز چې ماشومان پرې لوبې کوي-

ټيغتيغے:(ټيغ-ټی-غے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيټارے-

ټيغ سترګے:(ټيغ-سټر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټاغ سترګے-

ټيغق:(ټی-غق)اسم- واحد- مذکر- دَ يو مارغهٔ نوم-

ټيغکه:(ټی-غ-که)اسم- واحد- مؤنث- ټيغه- يو قسم مرغی- جمع ټيغکۍ-

ټيغکے:(ټی-غ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تغکے-

ټيغه:(ټی-غه)اسم- واحد- مؤنث- يوه ېې ويرې مرغی چې ټيغۍ ټيغۍ سترګې غړوي او غوښه ئ مرداره وي-

ټيغے:(ټی-غے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټغکے-

ټيق:(ټيق)اسم- واحد- مذکر- (۱)يوه خره وړه مرغی چې ډېره څربه وي او دَ پټی يا فصل نه بغېر بل ځائ نهٔ کښېني- (۲)دَ لوبو غنډ کانړے-

ټيقان:(ټی-قان)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ ماشومانو يوه لوبه چې پهٔ ټيکانو کيږي- (۲)دَ ټيق جمع-

ټيقے:(ټی-قے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټيق- ټيک- دَ ماشومانو دَ لوبو يو خاص قسم غز-

ټيک:(ټيک)اسم- واحد- مذکر- ټيکه- يو کالے چې زنانه ئ مخامخ پهٔ تندی اچوي-

ټيک:(ټيک)صفت- واحد- مذکر- (۱)صحيح- سم- برابر- روغ- پوره- درست- (م- هندی)- (۲)سپينتے- بېړے- غټه سپينتۍ-

ټيک:(ټيک)اسم- واحد- مذکر- مقابله- برابرے- سمون-

ټيک:(ټيک)اسم- واحد- مذکر- تنکۍ- تنه- جمع ټيکونه-

ټيکالخور:(ټی-کال-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- تالي څټ- ړوړی خلاص- کېړور- کېړغارے- کېړو- خېټو-

ټيکالمار:(ټی-کال-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ړوړی مار- (۲)مهمان نواز- ړوړی ورکونکے-

ټيکاله:(ټی-کا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټکله- ړوړی- مړی- روټی- ټيکله- ټکاله- (۲)ملاچرګک- کږی چرګ- مُد مُد- کوکوپش-

ټيکانه:(ټی-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- ټکانه- دَ وُسېدو ځاې- دمه ځاې- ټيکاونه- ټيکو- ټيکاڼه- پړاؤ- منزل- (م- هندی)-

ټيکاڼه:(ټی-کا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری ټيکانه-

ټيکاؤ:(ټی-کاؤ)صفت- (۱)دمه- ايسار- قرار- (۲)دَ غصې يا تاؤ سړېدنه- (مصدرونه کوُل/کېدل)-

ټيکاونه:(ټی-کاؤ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری ټيکانه-

ټيکاوڼه:(ټی-کاؤ-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری ټيکاڼه-

ټيکاوول:(ټی-کا-وه-وُل)مصدر متعدی- (۱)ډېره کول- مېشته کول- وُسول- ټېکول- (۲)پهٔ آرام کول- قراروُل- دمه کول- پهٔ ځاې ودروُل- (افغانستان)-

ټيکاوون:(ټی-کا-وه-وُن)حاصل مصدر- وګوری ټيکاوول-

ټيکاوونکے:(ټی-کا-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوری ټيکاوول-

ټيکاوونه:(ټی-کا-وه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری ټيکاوول-

ټيکاوېدل:(ټی-کا-وې-دل)مصدر لازم- (۱)استوګے کېدل- وُسېدل- مېشتېدل- ټيکېدل- (۲)ارامېدل- قرارېدل- دمه کېدل- ټيکاؤ کېدل-

ټيکاوېدلے:(ټی-کا-وې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګوری ټيکاوېدل-

ټيکاوېدن:(ټی-کا-وې-دن)حاصل مصدر- وګوری ټيکاوېدل-

ټيکاوېدنګ:(ټی-کا-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری ټيکاوېدل-

ټيکاوېدنه:(ټی-کا-وې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری ټيکاوېدل-

ټيکاوېدونکے:(ټی-کا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوری ټيکاوېدل-

ټيکاوېدهٔ:(ټی-کا-وې-دهٔ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګوری ټيکاوېدل-

ټيک پهٔ ټيک:(ټيک-پهٔ-ټيک)صفت- صحيح- پوره- درست- برابر- پوره پهٔ پوره- ټکی پهٔ ټکی- روغ- سلامت- سالم- هم هغه شان- کامل-

ټيکټ:(ټی-کټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ يو مقرر قيمت وړوکے لېبل چې دَ ډاک پهٔ لفافو استعماليږی- (۲)هغه اجازت نامه چې پهٔ قيمت خرڅولے شی- (۳)دَ انتخابی اميدواری هغه اجازت چې لهٔ سياسی اړخه يو اميدوار ته ورکولے شی- (۴)هغه عدالتی کاغذ چې دَ مقدمې پهٔ کاغذونو لګولے شی او مقرر قيمت پرې ورکولے شی- (۵)ټېکس- (م- انګريزی)-

ټيک ټاک:(ټيک-ټاک)اسم صفت- روغ- جوړ- سلامت- صحيح- سم دم- پهٔ قاعده- پهٔ ترتيب-

ټيکټاکه:(ټيک-ټا-که)اسم- واحد- مؤنث- خرسک- پشمداره غاليچه- پت داره غاليچه- (افغانستان)-

ټيک ټاکے:(ټيک-ټا-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو يوه لوبه چې پکښې ټيک بره ولی او لاندې ئې پهٔ ټيک رااېساروی-

ټيک ټيک:(ټيک-ټيک)صفت- رښتيا رښتيا- ښکاره- څرګند- پهٔ جهر- علانيه- ټکی پهٔ ټکی- صفا صفا-

ټيک خلے:(ټيک-خ-لے)اسم- واحد- مذکر- اسمان خلې توپه- طياره شکن توپه- هغه توپه چې جنګی جهازونه پرې پهٔ فضا کښې ويشتے شی- (افغانستان)-

ټيکرکے:(ټی-کر-کے)اسم-واحد- مذکر- کودرے- کودنے- کودے- ټيکرے- دَ مات خاورين لوښی وړه ټوکړه- جمع ټيکرکی-

ټيکری:(ټيک-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- غټری- وړوکے غر-

ټيکرے:(ټيک-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پړونے- څادر- پټو- پټکے- تازر- (۲)دَ جواری څادر- بساط- جمع ټيکری-

ټيکرے:(ټی-کهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- وګوری ټيکرکے-

ټيکس:(ټی-کس)اسم- واحد- ټيکټ- (م- انګريزی ټکټ)-

ټيکسی:(ټيک-سی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پهٔ کرايه چلېدونکے دَ سورلی ګاډے- عموماً دَ کراې دَ موټر دَ پاره ويلے شی- (۲- صفت)عصمت فروشه ښځه-

ټيکل:(ټی-کل)مصدر- سورے سورے کوُل- چڼ وڼ کوُل- سوړې سوړې کول-

ټيکله:(ټی-کَ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګوری ټيکاله-

ټيکلے:(ټی-کهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګوری ټيکل-

ټيکلے:(ټی-کهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ککوړے- (۲)دَ باجې (ګراموفون) ريکارډ-

ټيکن:(ټی-کن)حاصل مصدر- وګوری ټيکل-

ټيکنه:(ټی-کهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری ټيکل-

ټيکو:(ټی-کو)اسم- واحد- مذکر- وګوری ټيکاؤ-

ټيکوری:(ټی-کو-ری)اسم تصغير- واحد/جمع- مؤنث- وړه ټوکری-

ټيوکل:(ټی-که-وُل)مصدر متعدی- وګوری ټيکاوول-

ټيکول:(ټی-کَ-وُل)مصدر متعدی- ټيک کوُل- درستول- سموُل-

ټيکون:(ټی-کَ-وُن)حاصل مصدر- وګوری ټيکوُل-

ټيکونکے:(ټی-کَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوری ټيکوُل-

ټيکه:(ټی-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټيکی- ککشه- هغه خال چې هندوان ئې دَ خپل رسم او رواج لهٔ کبله پهٔ تندې باندې ږدی- (۲)څېره- دَ تندې يو قسم ګاڼه- ټيک- کهور- (۳)ستن- پيچکاری- جمع ټيکې-

ټیکیالے:(ټیک-یا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- خالداره- ټکی ټکی- مؤنث ټیکیالی-

ټیکېدل:(ټی-کې-دل)مصدر لازم- ټیک کېدل- سمېدل- درستېدل-

ټیکېدن:(ټی-کې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ټیکېدل-

ټیکېدنګ:(ټی-کې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ټیکېدل-

ټیکېدونکے:(ټی-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټیکېدل-

ټیکېدنه:(ټی-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټیکېدل-

ټیکېدۀ:(ټی-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ټیکېدل-

ټیکی:(ټی-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ټوکری- شکری- (۲)وګورئ ټیکه- (۳)یو قسم مارغۀ چې په سر ئې نښه وی- (۴)خال- نښه- (۵)غنډارے- (۶)یو پړول خواږۀ- (۷)دَ بدلې سروکے- (افغانستان)-

ټیکی:(ټی-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ټوکره- ټوټه- (۲)چکی- دَ ټکېدلی ځیز غنده چکی- (۳)پنډوس- غنډوسکے- غنډسکه-

ټیکی:(ټی-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دوره- چیستان- اړ-

ټیکی:(ټی-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- روټی- پړوړی- ککوړے-

ټیکے:(ټی-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چترکے-

ټیکه:(ټی-کۀ)اسم صفت- واحد- مؤنث- ځاروے- خوار ځاروے- مانده غځکے-

ټیګے:(ټی-ګے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خټکے- (افغانستان)-

ټیلیا:(ټیل-یا/ټی-لیا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تیلیا- دَ فصل یو قسم مرض چې غوړکے هم ورته وائی- (۲)لویه چاړۀ- (۳)مېتر- سائېس- دَ اسونو خدمتګار-

ټیم:(ټیم)اسم- واحد- مذکر- ټین- پیپه- جمع ټیمان-

ټیم:(ټیم)اسم- واحد- مذکر- ټولے- ډله- (م- انګریزی)-

ټیمک:(ټی-مک)اسم تصغیر- واحد- مذکر- (۱)ټیکے- (۲)دَ کېږدې یا تمبو لویه ستن- (۳)هغه لوئ لرګے چې دَ اوبۀ دَ کټي نه بهر راوتے وی- پسه-

ټیمګر:(ټیم-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ ټیم کاریګر- دَ ټین کار کونکے- جمع ټیم ګران-

ټیمګنے:(ټیم-ګۀ-نے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- ټیمک- ټیمګے- ټیم کوټے- وړوکے ټیم-

ټیمګے:(ټیم-ګے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وګورئ ټیمګنے-

ټین:(ټین)اسم- واحد- مذکر- ټیم- سپنځے- قلعے- جمع ټینونه-

ټینچر:(ټین-چر)اسم- واحد- مذکر- یوه سره بخنه مایع چې دَ نشې دَ پاره ځنبلې شی او دَ زخمونو وینځلو دَ پاره پکار راوستے شی- (م- انګریزی)-

ټینخے:(ټین-خے)اسم صفت- واحد- مذکر- پولی- خان ښایونکے-

ټینډکه:(ټین-ړه-که)اسم- واحد- مؤنث- تینډک- ټکره-

ټینګ:(ټینګ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پوخ- محکم- مضبوط- سخت- (۲)دَ نرم ضد- دَ اُبۀ ضد- (۳)کنجوس- بخیل- شوم- (۴)سُر شوے-

ټینګار:(ټینګ-ګار)اسم- واحد- مذکر- (۱)تاکید- اصرار- (۲)ټینګوالے- مضبوطی- پائیداری- ټینګتار- ټینګتیا- ټینګ توب-

ټینګاو:(ټینګ-ګاو)اسم- واحد- مذکر- (۱)تړون- ضبط و ربط- (۲)استحکام- مضبوطیا- (افغانستان)-

ټینګتار:(ټینګ-تار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټینګار-

ټینګتوب:(ټینګ-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټینګار-

ټینګتیا:(ټینګ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ټینګار-

ټینګ ټینګے:(ټینګ-ټین-ګے)اسم تصغیر- (۱)ټنګ ټنګے- چنچنے- (۲)ګړیال-

ټینګره:(ټینګ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټینګتیا- (۲)سفارش- جمع ټینګرې-

ټینګرے:(ټینګ-رے)اسم- واحد- مذکر- شاټینګه- چټی-

ټینګړ:(ټین-ګړ)اسم- واحد- مؤنث-وګورئ ترنګړ-

ټینګړسه:(ټینګ-ړۀ-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ترینګلی-

ټینګړی:(ټینګ-ګ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- ترینګلی- کړپش- کټه پش- کټه بوز-

ټینګښت:(ټینګ-ګښت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټینګوالے-

ټینګل:(ټینګ-ګل)مصدر متعدی- په نوی پیزار دَ مضبوطیا دَ پاره میخونه وهل- ټینګتی-

ټینګلے:(ټینګ-ګۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټینګل-

ټینګن:(ټینګ-ګن)حاصل مصدر- وګورئ ټینګل-

ټینګنګی:(ټینګ-ګنګ-ګی)اسم- ټینګېدنه- پاتې کېدنه- ایسارېدنه-

ټینګنه:(ټینګ-ګۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټینګل-

ټینګوالے:(ټینګ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)محکم توب- محکم والے- مضبوطوالے- (۲)بخیلی- کنجوسی- شومتوب- (۳)تاکید- سپارښتنه- (۴)سختی-

ټینګوره:(ټینګ-ګو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټینګره- سفارش- (۲)ټینګتیا-

ټینګول:(ټینګ-ګۀ-وَل)مصدر متعدی- (۱)کلکول- مضبوطول- محکم کول- ټینګ کول- (۲)چاپی کول- کښېمنړل- (۳)مضبوط نیول-

ټینګون:(ټینګ-ګ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ټینګول-

ټینګون:(ټینګ-ګون)اسم- واحد- مذکر- (۱)تاکید- سپارښتنه- (۲)مضبوطی- پوخوالے- ټینګوالے-

ټینګونکے:(ټینګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټینګول-

ټینګونګ:(ټینګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ټینګول-

ټینګونه:(ټینګ-ګ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ټینګول-

ټینګوونے:(ټینګ-ګ-وُو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)مضبوطوونے- هغه ځیز چې بل ځیز مضبوطوی- (۲)ساتندوئے-

ټینګه:(ټینګ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بېکار- په زور کار اخستنه- (۲)ارا جمع کوئنه- (۳)ځلورانیز- ټنګه- دَ پخوانی روپی ځلورمه برخه- (۴)قبائلی مزدور-

ټینګه:(ټینګ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سپارښتنه- پوخوالے- ټینګون-

محکم والے- مضبوطيا- (۲)دَ ټينګ مؤنث-

ټينګي ټامګي:(ټين-ګي-ټام-ګي)اسم (مرکب)- کومک- مالي مرسته-

ټينګېدل:(ټينګ-ګې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)مقابله کول- کلکېدل- مضبوطېدل- ودرېدل- ينه لګول- (۲)ختم کېدل- پېر سلبېښناک کېدل-

ټينګېدن:(ټينګ-ګې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټينګېدل-

ټينګېدنګ:(ټينګ-ګې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ټينګېدل-

ټينګېدنه:(ټينګ-ګې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټينګېدل-

ټينګېدونکے:(ټينګ-ګې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټينګېدل-

ټينګېدهٔ:(ټينګ-ګې-دهٔ)حاصلِ مصدر- دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ټينګېدل-

ټينګے:(ټينګ-کے)اسم- واحد- مذکر- نرے- انتروشے- جمع ټينګي-

ټينګے:(ټينګ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ميرې- دَ يوې ونې نوم- (۲)بونګه- فديه-

ټينګے:(ټينګ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټينګل-

ټين ټين:(ټين-ټين)اسم صوت- دَ ژړا اواز-

ټيوب:(ټيوب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټپ- ټوپ- (م- انګريزي)-

ټيوبا:(ټيو-با)اسم- واحد- مؤنث- لويه باجه- (افغانستان)-

ټيوټر:(ټيو-ټر)اسم- واحد- مذکر- اتاليق- اُستاذ- جمع ټيوټران- (م- انګريزي)-

ټيوټېرکه:(ټيو-ټې-رَ-که)اسم- واحد- مؤنث- ټيوټيوک- يوه مرغۍ چې دَ اَبو پهٔ غاړه ګرځي-

ټيوټيوک:(ټيو-ټي-وک)اسم- وګورئ ټيوټېرکه-

ټيونال:(ټيو-نال)اسم- واحد- مذکر- دَ نشې يو قسم ګولۍ يا کيپسول-

ټيونالي:(ټيو-نا-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ ټيونالو نشه کونکے-

ټې:(ټې)دَ "ا، ب" دَ پټۍ دَ پينځم حرف "ټ" تلفظ- وګورئ "ټ"-

ټېبل:(ټې-بل)اسم- واحد- مذکر- ميز- (م- انګريزي)-

ټېبل کلاټ:(ټې-بل-کلاټ)اسم- واحد- مذکر- ميزپوش- (م- انګريزي)-

ټېپ:(ټېپ)اسم- واحد- مذکر- ټوپ- نېټه- مقرر وخت- ټاکلے ځائ-

ټېپ:(ټېپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټائپ- نوع- قسم- ډول- نمونه- (۲)دَ کاغذ يا پلاسټک نه جوړه يوه فيته چې سلېښناکه وي- سلوشن ټېپ- (۳)ټوټې- نلکه- (۴)ټېپ ريکارډر- دَ ټېپ ريکارډر فيته- (۵)ټائپ رائټر-

ټېپ:(ټېپ)اسم- واحد- مذکر- ټوپ- دَ وښو ډېرے-

ټېپر:(ټې-پَر)اسم- واحد/جمع- مذکر- شلغم- يو قسم سبزي چې پهٔ ځمکې کښې کرلے شي- نباتاتي نوم دَ پراسيکاراپا جړوه (PRASSICARAPA)-

ټېپرقے:(ټېپ-رَ-قے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټېپرکے-

ټېپرکے:(ټېپ-رَ-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټپمرکے- ټيټکے- مندرے- ټېپرے- ټېپرقے- ټيټ شان سرے- جمع ټېپرکي-

ټېپرګے:(ټې-پر-ګے)اسم تصغير- وړوکے ټېپر-

ټېپ ريکارډ:(ټېپ-رې-کارډ)اسم- واحد- مذکر- دَ ريډيو پهٔ شان جوړه آله چې پهٔ يوه فيته اواز ثبت کوي- (م- انګريزي)-

ټېپرے:(ټېپ-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټېپرکے-

ټېپک:(ټې-پک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټوپک-

ټېپه:(ټې-په)اسم- واحد- مؤنث- دَ وښو ډېرے- ټوپ-

ټېټکه:(ټېټ-که)اسم- واحد- مؤنث- کلک ترلے- سخت تړلے- مصدر کول- (م- انګريزي)-

ټېر:(ټېر)اسم- واحد- مذکر- ټائر- (م- انګريزي)-

ټېرائي:(ټې-را-ئي)اسم- واحد- مؤنث- وېزاري-

ټېري:(ټې-ري)اسم- واحد- مذکر- اغېږ-

ټېغ:(ټېغ)اسم- اروړمے- غرچے- اروړمے- اړرکے- (افغانستان)-

ټېغ ټمبه:(ټېغ-ټم-به)اسم- (۱)قبض- (۲)بدهضمي- (۳)صفت- پرېشان- خفه- زهير-

ټېک:(ټېک)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوبرنده- (۲)دَ تندي او غوږ تر مينځه ځائ- جمع ټېکونه-

ټېک:(ټېک)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډډه- تکيه- (۲)آرام- دمه- سياله- (۳)دَ پناه ځائ- (افغانستان)-

ټېکس:(ټېکس)اسم- واحد- مذکر- دَ حکومت يا نورو اختيار لرونکيو ادارو لهٔ خوا پهٔ خلقو لګولے شوے رقم- محصول- (م- انګريزي)-

ټېکسټ:(ټېکسټ)اسم- واحد- مذکر- نصاب- متن- (م- انګريزي)-

ټېکسټ بک:(ټېکسټ-بک)اسم- واحد- مذکر- درسي کتاب- نصابي کتاب- (م- انګريزي)-

ټېکسټ بک بورډ:(ټېکسټ-بک-بورډ)اسم- واحد- مذکر- هغه پاکستاني اداره چې دَ نصابي کتابونو دَ چاپولو، خورولو او منظورولو کار کوي- (م- انګريزي)-

ټېکه:(ټې-که)اسم- واحد- مؤنث- هغه دوکانونه چې پکښې دَ حکومت پهٔ اجازت افيم خرڅيږي-

ټېکه:(ټې-که)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ ذمه اخستنه- ذمه داري- اجاره- جمع ټېکې-

ټېکه دار:(ټې-کَ-دار)اسم- واحد- مذکر- دَ ټېکې څښتن- اجاره دار- جمع ټېکه داران- مؤنث ټېکه داره- (م- انګريزي)-

ټپکېدل:(ټې-کې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)ډېره کېدل- وسېدل- مېشته کېدل- (۲)دمه کېدل- سوکه کېدل- ارامېدل- (افغانستان)-

ټپکېدلے:(ټې-کې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ټپکېدل-

ټپکېدن:(ټې-کې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپکېدل-

ټپکېدنه:(ټې-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ټپکېدل-

ټپکېدونکے:(ټې-کې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ټپکېدل-

ټپکېدهٔ:(ټې-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر- دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه-

وګورئ ټپکېدل-

ټپکی:(ټې-کئ)اسم- واحد- مؤنث- بلی- مندرۉ-

ټپل:(ټېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګټه کونه- (۲)دیکه- ټپله- ډغره-

ټپل پهٔ ټپل:(ټېل-پهٔ-ټېل)اسم صفت- دیکلے شوے- ټپله شوے-

ټپل ټال:(ټېل-ټال)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټپل جد- ټال مټول- انې بانې-
(۲)دٔ ماشومانو شور زوږ- (۲)ساتېرے- تفریح- سېل- (افغانستان)-

ټپل جد:(ټېل-جد)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټپل ټال-

ټپلر:(ټې-لر)اسم- واحد- مذکر- درزی- خیاط- (م- انګریزی)-

ټپل ماټپل:(ټېل-ما-ټېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دیکې- ټپلې- (۲)هجوم-

ټپلمار:(ټېل-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- ټپلې وهونکے- دیکې وهونکے-

ټپله:(ټې-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جوټه- دیکه- ډغره- (۲)دٔ اُبو دٔ مخې
راړولو دٔ پاره دٔ کابو بند یا دٔ لرګو، لښتو کېږی- (۲)دٔ ربل پهٔ پټړی
تلونکے هغه وړوکے شان مشین چې دٔ کرسی پهٔ شان جوړ زی دزه درې
کسان پکښې کښېناستے شی او مزدوران ئې پهٔ ټپله بیائی-

ټپله مار:(ټې-له-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)طفیلی- بېکاره- مفت
خور- لوېرند- (۲)هغه څوک چې غټې تجارتی معاملې کوی-

ټپلی پتی:(ټې-لی-پهٔ-تی)اسم- واحد- مؤنث- هغه نفسیاتی قوت چې دٔ هغې
پهٔ ذریعه یو سړے لرې ناست بل سړے متاثره کوی- (م- انګریزی،
یونانی)-

ټپلی سکوپ:(ټې-لی-سکوپ)اسم- واحد- مذکر- دوربین- هغه آله چې دٔ
مخصوصو ښیښو پهٔ مرسته یرې کتل او څېړنې کولے شی-

(م- انګریزی/یونانی)-

ټپلیفون:(ټې-لې-فون)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې لهٔ لرې لرې دٔ بجلی
پهٔ ذریعه اواز اورېدے او اورولے شی- (م- انګریزی)-

ټپلیګراف:(ټې-لې-ګراف)اسم- واحد- مذکر- دٔ تار لېږلو آله- (م- انګریزی،
یونانی)-

ټپلیګرام:(ټې-لې-ګرام)اسم- واحد- مذکر- تار- هغه پیغام یا خبر چې دٔ
ټپلیګراف مشین پهٔ ذریعه ورکولے شی- (م- انګریزی، یونانی)-

ټېم:(ټېم)اسم- واحد- مذکر- وخت- ساعت- (م- انګریزی)-

ټېمرکے:(ټېم-ر-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټیټکے- چیټکے- لنډ قدے-
ټېمرے-

ټېمرے:(ټېم-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ټېمرکے-

ټېسن:(ټې-سن)اسم- واحد- مذکر- سټېشن- دربدځے- (افغانستان)-

ټېنس:(ټې-نس)اسم- واحد- مذکر- یوه لوبه چې پهٔ دوه او څلور کسه کولے
شی لوبغاړی رېکټ (دٔ جالګی) سره دٔ ربړ غنډسکه وهی او دٔ مېدان مېنځ
کښې لګېدلی جال نه ئې یو بل ته اړوی- (م- انګریزی)-

ټېنک:(ټېنک)اسم- واحد- مذکر- یو جنګی توپه لرونکے ګاډے چې لهٔ اُسپنې
جوړ وی او پایې ئې پهٔ زنځیر چلېږی- (۲)تالاؤ- تالاب- (م- انګریزی)-

ټېنکی:(ټېن-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټانچې- ټانکی- ټېنک-

ټې ټې:(ټې-ټې)اسم صفت- واحد- مذکر- ترټرے- چاړا- هغه څوک چې ژبه
ئې نښلی-

---

ئ" (څې-رل)، ې"(هې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دٔ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ث:(ثې)حرف دَ عربي څلورم او دَ پښتو دَ پټې شپږم حرف چې دَ ابجدو پهٔ حساب يُ شمېر پينځهٔ سوه دے پښتو کښې پهٔ دې حرف ليکلي کېدونکي اکثر توري دَ عربي وی- جمع ثې ګانې-

ثابت:(ثا-بت)صفت- واحد- مذکر- لوړ- مکمل- پوره- ټول- محفوظ- روغ- سالم-

ثابت قدم:(ثا-بت-قَ-دم)اسم صفت- واحد- مذکر- مستقل مزاج- پهٔ لوظ او قول ټينګ- (م- عربي او فارسي مرکب)-

ثابت قدمي:(ثا-بت-قَ-ده-مي)اسم- واحد- مونث- مستقل مزاجي- استقلال- (عربي فارسي مرکب)-

ثابتول:(ثا-بهٔ-تَ-وَل)مصدر متعدی- رغول- مکمل کول- پوره کول- سر ته رسول-

ثابتول:(ثا-ب-ته-وَل)مصدر متعدی- ظاهرول- څرګندول- ثبوت ورکول-

ثابتون:(ثا-بهٔ-تَ-وَن)حاصل مصدر - وګورئ ثابتول-

ثابتون:(ثا-ب-تَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ثابتول-

ثابتونکے:(ثا-بهٔ-تَ-وونَ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ثابتونکي- مؤنث ثابتونکې- وګورئ ثابتول-

ثابتونکے:(ثا-ب-تَ-وونَ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ثابتونکي- مؤنث ثابتونکې- وګورئ ثابتول-

ثابتونه:(ثا-بهٔ-تَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ ثابتول-

ثابتونه:(ثا-ب-تَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ثابتول-

ثابته:(ثا-بهٔ-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- لوړه- روغه- پوره- ټوله- سالمه- مکمله- محفوظ- دَ ثابت مؤنث-

ثابته:(ثا-ب-ته)اسم صفت- واحد- مونث- ثبوت ته رسېدلې- صحيح- درسته- دَ ثابت مؤنث-

ثابتېدل:(ثا-بهٔ-تې-دَل)مصدر لازم- سر ته رسېدل- پوره کېدل- مکمل کېدل-

ثابتېدل:(ثا-ب-تې-دَل)مصدر لازم- ثبوت ورکېدل- ظاهرېدل- څرګندېدل-

ثابتېدن:(ثا-بهٔ-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدن:(ثا-ب-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدنګ:(ثا-بهٔ-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدنګ:(ثا-ب-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدنه:(ثا-بهٔ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدنه:(ثا-ب-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدونکے:(ثا-بهٔ-تې-دُونَ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ثابتېدونکي- مؤنث ثابتېدونکې- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدونکے:(ثا-ب-تې-دُونَ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ثابتېدونکي مؤنث ثابتېدونکې وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدهٔ:(ثا-بهٔ-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دواحد غائب صيغه- وګورئ ثابتېدل-

ثابتېدهٔ:(ثا-ب-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری د واحد غائب صيغه وګورئ ثابتېدل-

ثاد:(ثاد)اسم- واحد- مذکر- نو- زيم- (م- عربي)-

ثاقب:(ثا-قب)اسم صفت- واحد- مذکر- ځلېدونکے- روښانه- روڼ- وروڼ- ځلنده- بربښېدونکے- چڼ کېدونکے- (م- عربي)-

ثالث:(ثا-لث)اسم صفت- واحد- مذکر- ګواښ ګرندے- دريم ګړے- مينځګړے- جرګېباز- جرګچي- منصف- مشر- فېصله کونکے- جرګتو- (م- عربي)-

ثالث نامه:(ثا-لث-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ منصفانو ليکلې شوې فېصله-

ثالثي:(ثا-لِ-ثي)اسم- واحد- مؤنث- روغه- جوړه- منصفي- دَدوو کسو يا ډلو تر مينځه دَ روغې جوړې خبره کؤنه- (م- عربي)-

ثانوي:(ثا-نه-وي)اسم- واحد- مذکر- دوېم- دَ دوېمې درجې- (م- عربي)-

ثاني:(ثا-ني)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دويم- (۲)برابر- پهٔ شان- نظير- مثال- سيال- سارے- ډول- پهٔ څېر- (م- عربي)-

ثانيه:(ثا-ني-يه)اسم- واحد- مؤنث- سېکنډ- لحظه- لږ وخت- شېبه- (م- عربي)-

ثانيه ګر:(ثا-ني-يه-ګر)اسم- جمع- مذکر- دَ ګړی دَ وخت معلومولو ستنې- (افغانستان)-

ثبات:(ثه-بات)اسم- واحد- مذکر- قرار- ټينګوالے- پوخوالے- پائېداری- قيام-

ثبت:(ثبت)اسم- واحد- مذکر- ليکنه- داخلونه- تحرير- مهر- نقش - رېکارډ-

ثبتول:(ثب-تَ-وَل)مصدر متعدی- ليکل- داخلول- درج کول- لړول- رېکارډ کول- ټېپ کول-

ثبتون:(ثب-تَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ثبتول-

ثبتونکے:(ثب-تَ-وونَ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ثبتونکي- مؤنث ثبتونکې- وګورئ ثبتول-

ثبتونه:(ثب-تَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ ثبتول-

ثبتېدل:(ثب-تې-دَل)مصدر لازم- ليکل- بندېدل- دستخط کېدل- ټېپ کېدل-

ثبتېدن:(ثب-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ثبتېدل-

ثبتېدنګ:(ثب-تې-دَنګ)حاصل مصدر - وګورئ ثبتېدل-

ثبتېدنه:(ثب-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ ثبتېدل-

ثبتېدونکے:(ثب-تې-دُونَ-کے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ثبتېدونکي- مؤنث ثبتېدونکې- وګورئ ثبتېدل-

ثبتېدهٔ:(ثب-تې-دهٔ)حاصل مصدراو دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ثبتېدل-

ثبوت:(ثُ-بُوت)اسم- واحد- مذکر- سپينونه- رښتياکونه- پهٔ دليل ثابتونه- رښتونوالے- رښتوني- رښتيني- شهادت- دَ خبرې تصديق-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زبر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ۀ"(زَ-ړه)، ۀ"(ږو-بې-دهٔ)

ثبوتول:(ثَ-بُو-تَ-وَل)مصدر متعدی-(۱)دَ غلا دَ مال راوېستل- دَ بېلګې راوېستل- (۲)وګورئ ثابتول-

ثبوتون:(ثَ-بُو-تَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ثبوتول-

ثبوتونکے:(ثَ-بُو-تَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ثبوتونکی- مؤنث ثبتونکې- وګورئ ثبوتول-

ثبوتونګ:(ثَ-بُو-تَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ثبوتول-

ثبوتونه:(ثَ-بُو-تَ-وَۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ثبوتول-

ثرا:(ثَ-را)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زمکې لاندينۍ برخه- تاترين- (۲)زمکه- خاوره-

ثروت:(ثَر-وَت)اسم- واحد- مؤنث- شتمنی- مال- دولت- توانګری- موړ والے- شان و شوکت- شتۀ منی-

ثروتمند:(ثَر-وَتَ-مَند)اسم صفت- واحد- مذکر- دولتمند- شتمن- موړ- مالدار- توانګر-

ثروتمندی:(ثَر-وَت-مَن-دی)اسم- واحد- مؤنث- مړېښت- دولتمندی- شتمنی-

ثريا:(ثَ-رَیَ-یا)اسم- واحد- مؤنث- دَ اوو ستورو جومېچ- پېرون- پربېمنې- پروونې- پروين- اووۀ خوېندې- پېرونه-

ثريد:(ثَرِيد)اسم- واحد- مذکر- صحبت- پېنډه- دَ غوښې ښوروا کښې چوری کړې روټۍ- (م- عربی)-

ثقافت:(ثَ-قا-فَت)اسم- واحد- مذکر- کلچر- کلتور- تهذيب او تمدن- (م- عربی)-

ثقافتی:(ثَ-قا-فه-تي)صفت- دَ ثقافت سره متعلق-

ثقالت:(ثَ-قا-لَت)اسم- واحد- مؤنث- دروندوالے- وزن- پېټے- ګرانوالے- (م- عربی)-

ثقل:(ثِ-قَل)اسم- واحد- مذکر- بوج- بار- پېټے- وزن- دروندوالے- (م- عربی)-

ثقلين:(ثَ-قَ-لين)اسم- مذکر- دوه درانۀ څيزونه يعنی (۱)دنيا او آخرت- (۲)انسان او پېرے- (م- عربی)-

ثقه:(ثِ-قه)اسم صفت- واحد- مذکر- معتبر- اتباری- درونډ- کره- سپين روبے- (م- عربی)-

ثقه ناک:(ثِ-قه-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- درونډ- معتبر سړے- ثقه ور-

ثقه ور:(ثِ-قه-ور)اسم صفت- وګورئ ثقه ناک-

ثقيل:(ثَ-قيل)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر(۱)کلک- درونډ- سنګ- ګران- وزنی- (۲) هغه څيز چې پۀ مضمېدو کښې ګران وی (۳) هغه ټکے چې فصيح نۀ وی- (م- عربی)-

ثلاثی:(ثُ-لا-ثی)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ درې حرفونو کلمه- (۲)دَ دريو شعرونو کلام- (م- عربی)-

ثلث:(ثُ-لُث)اسم- واحد- مذکر- دَ جېل پۀ اصطلاح کښې دَ نمبردارانو هغه ټولے يا دَ دې ټولی فرد چې دَ لوئ دروازې او دَ جېل دَ احاطې دننه پېغام وړی راوړی- (م- عربی)-

ثلث:(ثُ-لث)اسم- واحد- مذکر- (۱)دريمه برخه- دريمه حصه-(۲)دَ خط يو قسم-

ثمر:(ثَ-مَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)مېوه- (۲)ګټه- (۳)بدله- فائده- (م- عربی)-

ثمره:(ثَ-مَه-رَه)اسم- واحد- مؤنث- حاصل نتيجه-

ثمن:(ثَ-مَن)اسم- واحد- مذکر- (۱)بيه- قيمت- اجرت- بيعه- (۲)اتمه برخه- اتمه حصه-

ثمين:(ثَ-مين)اسم صفت- واحد- مذکر- قيمتی- ګران قيمته-

ثنا:(ثَ-نا)اسم- واحد- مؤنث- ستائينه- تعريف - حمد- صفت- (م- عربی)-

ثناخوان:(ثَ-نا-خوان)اسم صفت- واحد- مذکر- ثنا صفت بيانونکے- تعريف کونکے- مدح خوان- ثناګر- (م- عربی/فارسی)-

ثناخوانی:(ثَ-نا-خوا-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ثنا کونه- صفت کؤنه- (م- ثنا عربی- خوانی فارسی)-

ثناګر:(ثَ-نا-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ثناخوان- (م- ثنا- عربی- ګر- فارسی)-

ثنويت:(ثَن-وی-يت)اسم- واحد- مذکر- دوه والے- دَ وحدت ضد- (م- عربی)-

ثواب:(ثَ-واب)اسم- واحد- مذکر- (۱)اجر- دَ نېک کار بدله- عوض- فائده- (۲)نېکی- جمع ثوابونه- (م- عربی)-

ثوابت:(ثَ-وا-بت)اسم- جمع- مذکر- (۱) دَ ثابت جمع- (۲)پۀ ځائې ولاړ ستوری (م- عربی)-

ثوابی:(ثَ-وا-بی)صفت- (۱) دَ فائدې کار- دَ خېر ښېګړې کار- دَ ثواب کار- دَ نېکۍ کار- دَ ثواب جوګه- اجر لرونکے- (۲)ختنې هغه ښۀ کارونه چې فرض يا سنت نۀ وی او محض دَ ثواب ګټلو لۀ خاطره کيږی-

ثوب:(ثَوب)اسم- واحد- مذکر- جامه- کالے- (م- عربی)-

ثور:(ثَور)اسم- واحد- مذکر- (۱) غڅکے- غوايه- دَ اسمان دَ دوېم برج نوم چې شکل ئې دَ غوئی پۀ شان دے (۲) دَ شمسی کال يوه مياشت- (۲۱ اپرېل نه ۲۱ مئی)- (م- عربی)-

ثېمر:(ثې-مر)اسم- واحد- مذکر- يو غټ مارغۀ-

ئ (څي-رل)۔ ې(هې-ره-وَل)۔ ی(پيا-لی)۔ ے(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ج:(جیم)حرف- واحد- مذکر- دَ پښتو او اردو دَ پټې اووم دَ عربي پنځم او دَ فارسي شپږم حرف چې دَ ابجدو پهٔ حساب يُ قيمت درې دے-

جابر:(جا-بر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)ظالم- جبر کونکے- تاوان رسونکے- (۲)تکړه- زورور- (۳)دَ ماتو هډونو پهٔ ځايُ کولو پهٔ هنر پوه- (افغانستان)- جمع جابران- (م- عربي)- (۴)وګورئ جبر ۲-

جابر:(جا-بر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- مېټ- دَ مزدورانو نه کار اخستونکے- (م- انګريزي)-

جابه:(جا-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جعبه- دَ مېز، الماري او داسې نورو څيزونو خانه- (۲)کوپی- ډبه- دَ څرمنې جوړه هغه کوپی چې تېل او غوړي پکښې اچولے شي- (م- عربي)-

جابی:(جا-بي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ګډېدونکو اوږد قميص- خلکې- پېشواز- تيلک- (۲)دَ پښې ګونګروګان- دَ پښو ګينګړي- (افغانستان)-

جاپانے:(جا-پا-نے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (دَ جاپان سره متعلق يا منسوب- (۲)عام طور سره دَ دوئ مصنوعاتي څيزونه-

جاپړی:(جا-پ-ړي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ګډو دَ څرمنو نه جوړه شوې صندلي برستن- (۲)پوستين-

جات:(جات)لاحقه- هغه لاحقه چې دَ جمع تورو پهٔ اخر کښې راځي لکه مېوه جات-

جاتکے:(جات-کے)اسم- واحد- مذکر- هلک- وړوکے- ماشوم- ژبے- زنکے- بالکے-

جاټ:(جاټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ زمکو کاروباري- (۲)بې تعليمه- جټ- ناپوهه- (۳)تور- توررنګے- دَ پنجاب وُسېدونکے- (م- هندي)-

جاټوره:(جا-ټو-ره)صفت- واحد- مؤنث- ډېره غټه-

جاچ:(جاچ)اسم- واحد- مذکر- اندازه- قياس- جائزه- (ش- هندي جاچ)-

جاجر:(جا-جر)اسم- واحد- مذکر- چارجر- دَ تماچې ټوپک او نورو اتشي وسلو دَ کالتوسو اېښودو ځايُ- ميګزين- مېخزين- (م- انګريزي)-

جاچل:(جا-چل)مصدر- (۱)جاچ اخستل- اندازه لګول- جائزه اخستل- (۲)فکر انديښنه کول- (افغانستان)-

جاچلے:(جا-چهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ جاچل-

جاچن:(جا-چن)حاصلِ مصدر- وګورئ جاچل-

جاچنه:(جا-چهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ جاچل-

جاچوکے:(جا-چو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- نرے پېرے- ټپ ټيپ- خوار او کمزورے- نرے پرے-

جاچونکے:(جا-چون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جاچل-

جاچېدل:(جا-چې-دل)مصدرِ لازم- اندازه کېدل- معلومېدل- تخمينم کېدل-

جاچېدن:(جا-چې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ جاچېدل-

جاچېدنګ:(جا-چې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ جاچېدل-

جاچېدنه:(جا-چې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ جاچېدل-

جاچېدونکے:(جا-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جاچېدل-

جاچېدهٔ:(جا-چې-دهٔ)حاصلِ مصدر- دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ جاچېدل-

جاچ:(جاچ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جاچ- (م- هندي)-

جاخ:(جاخ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جاخه-

جاخه:(جا-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ونو بوټو څانګې چې پهٔ يو بل کښې ننوتې وی -جاله- دام- (۲)ګنجې- امبړچمبړ- انجل بنجل- ارجل برجل-(۲)الانجه- ربړه- جګړه- کړاؤ-(جمع-جاخې)-

جادو:(جا-دو)اسم- واحد- مذکر- منتر- کوډې- ټونه- سحر- (م- فارسي)-

جادوبيان:(جا-دو-ب-يان)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې خبرو کښې يُ تاثير وی- پهٔ تقرير کښې تاثير لرونکے- (م- فارسي)-

جادوبيانی:(جا-دو-ب-يا-ني)اسم- دَ جادو بيان کېدو حالت-

جادوګر:(جا-دو-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- منتر کونکے- ټګ- چالباز- دوکه باز- جادو کونکے- کوډګر- (جمع جادوګران)-

جادوګری:(جا-دو-ګهٔ-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوډګری- دَ جادو کار- دَ جادو پېشه- جنتر منتر- (۲)ټګی ټوري- دوکه-

جاده:(جا-ده)اسم- واحد- مؤنث- لار- لاره- ليار- (م- عربي)-

جاړنګ:(جا-ړنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- کمزورے- ټپ- مانده- ړنګر-

جاړی:(جا-ړي)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)کمزورې او بېکاره اوښه- (۲)بوړی- زړه ښځه-

جاذب:(جا-ذب)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)جذب کونکے- راکښونکے- (۲)خشکه- هغه کاغذ چې سياهي پرې وچولے شي- (م- عربي)-

جاذبوالے:(جا-ذب-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښانېست- ښکلا- راکښون- (۲)جاذبيت- پېمختوب- (م- عربي)-

جاذبه:(جا-ذ-به)اسم- واحد- مؤنث- راکښنه- راکښون- هغه قوت چې اجسام خان ته راکاږی- (افغانستان)-

جاذبيت:(جا-ذی-بی-يت)اسم- واحد-مذکر- وګورئ جاذبوالے-

جار:(جار)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پندغالے- شپول- ګاړه- (۲)دَ زنانو بېت الخلا-(۳)ړنړوره- (۴- صفت)ښکاره- جهر-(۵)دَ شپېلی پرده- (۶)هغه ځايُ چې ځاروی پکښې ودريږی- (۷)دېوال- (۸)پُشتې- دَ تيرو غټه پوله-

جاراېستل:(جار-اېس-تل)مصدرِ متعدی- (۱)پستنه کول- منع کول- بيرته غرخول- قے کول- باقی کول- (۲)دَ لارې نه واپس کول- ستنول- (۲)بندول- جارباسل-

جاراېستلے:(جار-اېس-تهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ جاراېستل-

جاراېستنګ:(جار-اېس-تنګ)حاصلِ مصدر وګورئ جاراېستل-

جاراېستنه:(جار-اېس-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر وګورئ جاراېستل-

جاراېستونکے:(جار-اېس-تون-کے)اسم فاعل- وګورئ جاراېستل-

جاراېستهٔ:(جار-اېس-تهٔ)حاصلِ مصدر- دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب

صيغه- وګورئ جاربېسټل-

جاربار:(جار-بار)متعلق فعل- په جهر- په ډاګه- په ښکاره-(م- عربی)-

جارباسل:(جار-با-سل)مصدر متعدی- (۱)قې کول- (۲)واپس کول- منع کول-(۳)بندول- (۴)ترل- په سرکوټل- راګرځول-

جارباسلے:(جار-با-سه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ جارباسل-

جارباسنه:(جار-با-سه-نه)حاصل مصدر- وګورئ جارباسل-

جارباسونکے:(جار-با-سون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جارباسل-

جارچی:(جار-چی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پنډورچی- نغارچی- نغاره وهونکے- (۲)سُوری پمامه- (۳)هغه سړے چې راز نه شي ساتلے-

جارح:(جا-رح)اسم صفت- واحد- مذکر- غځونکے- پرېکونکے- زخمی کونکے- حمله کونکے- بې جوازه جنګ شروع کونکے- (م- عربی)-

جارحانه:(جا-ر-حا-نه)صفت/متعلق فعل-(۱)د جارح په شان- (۲)د جارح په رنګ- (۳)جارح سره متعلق-

جارحه:(جا-ر-حه)اسم- واحد- مونث- (۱)د انسان هر اندام خصوصاً لاس- (۲)چاقو- چاړه-(م- عربی)-

جارحيت:(جا-ر-حی-يت)اسم- بې جوازه حمله- بې جوازه جنګ- بې جوازه ګواښ-

جارغالے:(جار-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه نغرے چې د کوټې په کټ کښې وی- (۲)کوراړے- درکوټے پټے- کوړے- کورکے- (افغانستان)-

جارغلے:(جار-غ-لے)اسم- واحد- مذکر- نغرے- انغرے-

جارکړونے:(جار-کړو-نے)اسم- واحد- مذکر- د رشې اخستلو په وخت په اخر کښې ماشومانو ته لږ لږ غنم ورکونه-

جارکړونے:(جار-کړو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)جار کونکے- اوبدونکے- (۲)هغه سړے چې جرګه په اګيو کښېنوی او په يوه اګی توره نښه وکړی او د هغې اګی بچے هم د هغه وی-

جارکوب:(جار-کوب)اسم- واحد- مذکر- (۱)بزباز- (۲)بسياسه- (۳)جلوتری- (۴)جاوتری- د جانغل د جوز پوستکے- نباتاتی نوم مې رس تيافرے ګرېنس (MERES TIAFRAE GRINCE)-

جارکېده:(جار-کې-ده)حاصل مصدر- خاربېده- قربانېده- صدقه کېده-جاربېده- وګورئ جاربېده-

جارګنی:(جار-ګ-نی)اسم- واحد- مؤنث- د خشاک د اېښودلو ځای- د غوشيانو يا څپياکو اېښودلو ځای-

جارګنے:(جار-ګه-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه ځای چې څاروی پکښې ودروی او د نورو چارو د پاره هم استعماليږی-

جارګنے:(جار-ګه-نے)اسم- واحد- مذکر- شپول- د لرګيو يا غنو نه جوړ شپول چې څاروی عموماً ګډې بزې پکښې ودرولے شی-

جارګے:(جار-ګے)اسم- واحد- مذکر- د اوړ بلولو ځای- چوليانې- باورچی خانه-

جارو:(جا-رو)اسم- واحد- مونث- جاړو- رېبځ- جاروب- بوهاری- باری- کانټه- جمع جاروګانې- (ش- هندی)-

جارواته:(جار-وا-ته)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ جاروتل-

جاروب:(جا-روب)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ جارو- (م- فارسی)-

جاروتل:(جار-و-تل)مصدر- منع کېدل- پښېمانه کېدل- بېرته ګرځېدل- د خبرې نه اوړېدل-

جاروتلے:(جار-و-ته-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ جاروتل-

جاروتن:(جار-و-تن)حاصل مصدر- وګورئ جاروتل-

جاروتنه:(جار-و-ته-نه)حاصل مصدر- وګورئ جاروتل-

جاروتونکے:(جار-و-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جاروتل-

جاروتونے:(جار-و-تو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جاروتل-

جاروړے:(جار-وه-ړے)اسم صفت- واحد- خشکے- چې څوک خپل خپلوان نه لری- بې اسرې- بې تامه-

جاروکښ:(جا-رو-کښ)اسم صفت- واحد- مذکر- جارو وهونکے- صفائی کونکے- خاکروب- (۲)خوشامدګر- (۳)خدمتګار- نوکر-

جاروکول:(جا-رو-که-ول)مصدر متعدی- کانټه کول- د جارو په واسطه ځای پاکول-

جاروګی:(جا-رو-ګی)اسم تصغير- واحد/جمع- مؤنث- وړه جارو-

جارول:(جا-ر-ول)مصدر متعدی- جاروکول- پاکول- صفا کول-

جارول:(جا-ر-ول)مصدر متعدی- (۱)تنسته غورول- (۲)شاغوت راکښل- (۳)سپک کتل- يو قسم کنځل- (۴)وګورئ خارول-

جارومړے:(جا-رو-مه-ړے)اسم صفت- ورک شوے- غرق شوے- کوروړانے (د شپږو په ړول وئيلے شی)-

جارون:(جا-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ جارول-

جارون:(جا-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ جارول-

جارونکے:(جا-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جارول-

جارونکے:(جا-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جارول-

جارونه:(جا-ر-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ جارول-

جارونے:(جا-ر-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جارول-

جارونے:(جا-ر-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جارول-

جارونے:(جا-رو-نے)اسم- واحد- مذکر- لوپټه- پړونے- څادر-

جاری:(جا-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)شروع- روان- همېشه بهېدونکے- (۲)قربانی- حلاله- (۳)چل- چالو- چلېدونکے- دوېمه معنٰی کښې اسم- (م- عربی)-

جاری باری:(جا-ری-با-ری)صفت- جاری ساری- ټول عمری- دوامی- همېشه- چې هر وخت جاری او روان وی- (م- جاری عربی- باری تابع مهمل)-

جاريی:(جا-ره-يی)اسم صفت- واحد- مذکر- عام- ښکاره- مشهور- (عام طور سره دَ لارې دَ صفت په طور راځي)-

جاريستل:(جا-ريس-تل)مصدر- وګورئ جاريستل-

جارېدل:(جا-رې-دل)مصدر- (۱)تنسته غوړولے کېدل- (۲)وګورئ خارېدل-

جارېدن:(جا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جارېدل-

جارېدنګ:(جا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جارېدل-

جارېدنه:(جا-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ جارېدل-

جارېدونکے:(جا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جارېدل-

جارېده:(جا-رې-ده)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ جارېدل-

جاړ:(جاړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)جلاب- (۲)جاړې بوټی(۳)پېداوار- دَ باغ حاصلات- (۴)دونډ- جړ-

جاړبوټے:(جاړ-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- سنا- يو بوټے چې دَ جلابو په جوړولو کښې پکار راځي- سېربندکے - نباتاتی نوم کېسيا ايکيوټې فوليا -(CASIA EQUATE PHOLYA)

جاړپاڼې:(جاړ-پا-ڼې)اسم- سنا- سلامکی- سارمکی- يو دست راوستونکے بوټے- نباتاتی نوم کېسيا ايکيوټې فوليا-

جاړجاځې:(جاړ-جا-ځې)صفت- په يو بل کښې ننوتے- په يو بل کښې ننوتے- جاځه-

جاړجګړ:(جاړ-ج-ګړ)اسم- جم جګړ- سيلی باران-

جاړن:(جا-ړن)اسم- واحد- مذکر- دَ کپړې ټوټه چې پرې څېزونه څنډلے شی- (م- هندی)-

جاړندې:(جا-ړن-دې)اسم- دَ ژمی موسم کښې دَ بارانونو ورځې شپې-

جاړو:(جا-ړو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ جارو- جمع جاړوګانې-

جاړوله:(جاړ-وَ-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ جلابو په جوړلو کښې پکارېدونکے يو مشهور بوټے- (افغانستان)-

جاړه(جا-ړه)اسم- واحد- مونث- (۱)يو ازغن بوټے- جغاغه-(۲)دَ ازغنو بوټو ګڼ شمېر-

جاز:(جاز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جهاز- جمع جازونه- (م- عربی)-

جاسوس:(جا-سوس)اسم- واحد- مذکر- څرے- څارُو- مقبر- مخبر- پټ خبر ورکونکے- پټ حال لټونکے- جمع جاسوسان- (م- عربی)-

جاسوسی:(جا-سو-سی)اسم- مؤنث- دَ جاسوس سره متعلق- مخبری- مقبری- پټ حال معلومونه- دَ جاسوس پېشه- (مصدرونه کول/کېدل)-

جاغور:(جا-غور)اسم- واحد- مذکر- (۱)ججوره- (۲)يو مرض چې په مرې کښې غنډ جوړ شی-(م- فارسی)-

جاغورے:(جا-غو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- مشروټ ملک- پخنے ملک-

جاغه:(جا-غه)اسم- واحد- مؤنث- دَ قميص غاړه- ګرېوان-

جاکټ:(جا-کټ)اسم- واحد- مذکر- واسکټ- نيم تنے- جېکټ- جانکټ- (م- انګرېزی)-

جاکړ:(جا-کړ)اسم-واحد- مذکر- جکړ- طوفان او باران- جم جکړ- ځول- (م- هندی)-

جاکے:(جا-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- يخ شوے- موره شوے- مايه شوے- پړن- پړن- کنګل شوے- چکه شوے-

جاګنے:(جاګ-نے)اسم- واحد- مذکر- په غوبل کښې دننه غونے- دَ ګوارې مغه پنګر چې دَ ټولو نه وړاندې ځی-

جاګير:(جا-ګير)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوتر- سپرې- زمکه- دفتر- جائېداد(۲)مغه زرعی جائېداد چې دَ بادشاهانو يا دَ حکومت له خوا دَ وفاداری په انعام کښې ورکولے شی- جمع جاګيرونه- (ش- فارسی)-

جاګيردار:(جا-ګير-دار)اسم صفت واحد- مذکر- دَ جاګير خاوند- دَ زمکو خاوند- زميندار- مغه سړے چې دَ بادشاه يا حکومت له طرفه ورکړے شوې زمکه خوری - (ش- فارسی)-

جال:(جال)اسم- واحد- مذکر- (۱)دام- لومه- (۲)دستور- (۳)مکر- فرېب- (۴)دَ ګېړ بيزو غلانځو ته اچونکې بوجګی چې دَ بچيو دَ رودلو نه پرې ساتلے شی-(وړومبی معنی ش- فارسی)-

جال بنجال:(جال-بن-جال)اسم صفت- الوول- غټې غټې- جاخه شوے - جانجوخله - ګنجلک-

جال جولکی:(جال-جول-کی)اسم- جمع- مذکر- مغه تارونه او جالونه چې جولاګی اودلی وی-

جالر:(جا-لر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځنډے- تار- جومر- جمکی- يو پسول- (۲)حاشيه- کناره- (۳)مغه کپړه چې جال لری او عام طور سره دَ زنانو قميصونو او دَ کټ څادرونو وغېره سره دَ زينت دَ پاره لګولے شی-

جالکی:(جا-لَ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پنجره- وړوکے جال-

جالکے:(جا-لَ-کے)اسم- روبند- (۱)برقع(بورقه) کښې دَ سترګو دَ پاره جوړ شوے جال- (۲) وړوکے جال- (۳)دَ جولاګی اودلے جال-

جالوان:(جا-لَ-وان)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ جالې مالک - (۲)دَ جالې چلونکے- (۳)مغه سړے چې لويو لويو کارونو ته لاس اچوی- (صفت)-

جالوغ:(جا-لوغ)اسم- واحد- مذکر- مغه لمڅے چې دَ اَس دَ زين دَ لاندې اچولے شی-

جالول:(جا-لَ-ول)مصدر متعدی- مشهورول- رواج ورکول-

جالولے:(جا-لَ-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- زګورئ جالول-

جالون:(جا-لَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ جالول-

جالونکے:(جا-لَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جالول-

جاله:(جا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ مشکونو يا شنازونه جوړه کشتی- په سيند دَ پورې وتو دَ پاره دَ لرګو جوړه کشتی چې لاندې ترې شنازونه تړلی وی- (۲)په غوبل کښې په غوايانو پسې لګېدلې دَپښو جاځه- (۳)دَ رېړ دَ لرګيو دَ وړلو دَ پاره له لرګيو نه جوړه سورلی- (جمع جالې)-

جاله:(جا-له)اسم- واحد- مونث- (۱)د مارغانو د ناستی او بچو راوړو ځایْ- خاله- منخوله- منجاله- منخاله-(۲)نېستي- خواری- غریبی- (۳)د سترګو پړده یا جاخه-

جاله پروب:(جا-له-پروب)اسم صفت- جنجالی سړے- وران کارے- هغه سړے چې په څهٔ پروا نهٔ لری - بې پروا- بې غمه-

جالی:(جا-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ جالوان-

جالېدل:(جا-لې-دل)مصدر لازم- مشهورېدل- رواج موندل-

جالېدن:(جا-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جالېدل-

جالېدنګ:(جا-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جالېدل-

جالېدنه:(جا-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جالېدل-

جالېدونکے:(جا-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جالېدل-

جالېدهٔ:(جا-لې-دهٔ)حاصل مصدر- د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ جالېدل-

جالی:(جا-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)هغه نری کپړه چې ږرونو یا کړکیو ته لګی-(۲)د وسپنې له تارونو جوړ جاله- چاڼ ځادر- (۲)د ولاړو اُبو شنې جاخې- (۴)جېنجره کپړه- (م- هندی)-

جام:(جام)اسم- واحد- مذکر- د مېوې او شیرې نه جوړه مربه- (م- انګریزی)-

جام:(جام)اسم- واحد- مذکر- کنډول- کټورے- پیاله- پېمانه- کاسه- ګلاس- د څښلو لوښے- جسے- جرمنے- (م- فارسی)-

جامباز:(جام-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- ناړامه- د خپلې رضا خاوند-

جامباز:(جام-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه اوښ چې سورلی پرې نهٔ شی کولے- مست اوښ- ناباری اوښ- سرکش اوښ-

جامبره:(جام-به-ره)اسم- واحد- مؤنث- ببره- د ببرې ونه-

جامبړه:(جام-بهٔ-ړه)اسم- واحد- مونث- جاخه- جاړه- هغه جاړه چې ځانګې ې یو بل کښې ننوتې زی-

جام جم:(جا-م-جم)اسم- واحد- مذکر- د یو مشهور باچا د جام نوم چې د قېصې مطابق به پکښې د ټولې دنیا عکس ښکارېدهٔ- د جمشېد بادشاه جام-

جامد:(جا-مد)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کلک - سخت- ټینګ- (۲)هغه کلمه چې اشتقاق ترې نهٔ کیږی- (م- عربی)-

جامدار:(جام-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- د توشه خانې محافظ او نګران- د جامو د کوټې تحویلدار-

جامدانی:(جام-دا-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث یو قسم ململ چې بوټی وی پرې او زنانه ترې لوپټې جوړوی- جمه دانی- (م- هندی)-

جامع:(جا-مع)اسم- واحد- مذکر- (۱)مکمل- پوره- (۲)یو ځایْ کونکے-(۲)جامه- لویْ جمات- (۴)مجموعه- (۵)د خدایْ تعالیٰ یو صفاتی نوم-

جامع الحروف:(جا-م-عل-ح-روف)اسم- د شاعری په صنعت کښې یو شعر چې پکښې د پټې ټول حروف راوړلے شی-

جامع جمات:(جا-مع-جو-مات)اسم- واحد- مذکر- لویْ جمات- هغه جمات چې د اختر او د جمې مونځ پکښې کیږی- د جمې جمات-

جامعه:(جا-م-عه)اسم- واحد- مونث- (۱)یونیورسټی- (۲)ټولنه- (۲)دارلعلوم- (۴)جامه- هغه جمات چې د جمې نمونځونه پکښې کیږی-

جامعیت:(جا-م-عی-یت)اسم- جامع والے- پوره والے-

جامکے:(جام-کے)اسم- واحد- مذکر- لنډ پتلون- جانګے-

جامګوړے:(جام-ګو-ړے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وګورئ جامکے-

جامکے:(جام-کے)اسم تصیغر- واحد- مذکر- ورکوټے جام- جامګوټے- کټورے-

جامن:(جا-من)اسم- واحد- مذکر- یوه ونه او د هغې مېوه چې اودی رنګ لری - نباتاتی نوم سی زی جم جامبولے نم یا یوجینیا جامبولېنا -SYZYGIUM JAMBOLANUM, 2. EUGENIA JAMBOLANA)

جامن:(جا-من)اسم- واحد- مذکر- د کپېدونکو تنګ قمیص-

جامنو:(جام-نو)اسم- جامن- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ جامن ۱-

جامه:(جا-مه)اسم- واحد- مؤنث- پوشاک- لباس- کالی- کپړه- لته- جوړه-

جامه جوړه:(جا-مه-جو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د ناوې د جهېز سامان-

جامه دار:(جا-مه-دار)اسم صفت - درزی- جامې جوړونکے-

جامه زېب:(جا-مه-زېب)اسم صفت- ښائسته لباس اغستونکے- هغه څوک چې هره جامه پرې ښائسته ښکاری- (م- فارسی)-

جامې:(جا-مې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)نمری-(۲)د زنانو د میاشتې خاصه موده- د زنانو په خاصه موده کښې حېض جاری کېدنه-

جان:(جان)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ډېر خوږ- ډېر نژدې- دمینې کلمه- زړهٔ ته نژدې- (۲- اسم)ځان-

جانا:(جا-نا)اسم صفت- واحد- مذکر- د جان د پاره د ندا کلمه-

جانان:(جا-نان)اسم- واحد- مذکر- (۱)محبوب- معشوق- دلبر- جان- جانا-(۲)عجیبه-

جانانه:(جا-نا-نه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)یارباش- خوږ یا د ښهٔ خوئ څښتن یا مینه ناک- (۲)عجیبه- (۲)معشوقه- (۴)ښائسته-

جانب:(جا-نب)اسم- واحد- مذکر- (۱)طرف- سمت- خوا- اړخ- ړوه- (۲)ډله- فریق- (۲)سبب- وجه- جمع جانبېن-

جانباز:(جان-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- ځان ځارونکے- بهادر- توریالے- مجاهد- سربښندونکے- (م- فارسی)-

جانبازی:(جان-با-زی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سر داو کونه- (۲)همت او کوشش کونه- (۲)بهادری کونه- (م- فارسی)-

جانبدار:(جا-نب-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- طرفدار- ملګرے- مدګار- مرستیال-

ځ" (څې-رل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پیا-لي)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

جانبداری:(جا-نب-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- ملګرتیا- طرفداری- مرسته- (م- فارسی)-

جانبېن:(جا-ن-بېن)اسم- مذکر- تشبیه- دَ جانب تشبیه- دواړه خواه- دوه جانبه- دواړه اړخه- دوه طرفه-

جان جان:(جان-جان)کلمه- (۱)دَ زارۍ کلمه- چا ته دَ منت په وخت کښې ادا کېدونکې کلمه- (۲)دَ زياتې مينې لۀ وجې معشوق يا ماشومانو ته وئيلے شي -(۳)دَ خوشخالی او انبساط کلمه-

جانجن:(جان-جن)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه ونه چې مېوه ئې رنګی وی-

جانجن:(جان-جن)اسم- واحد- مذکر- جينجړ- دَ يو بوټي نامه چې عام طور سره دَ پټو نه ګېرچاپېره کرلے شي او دَ سوخولو دَ پاره پکارولے شي-

جانجو:(جان-جو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ناراسته- ناړامه- جانجي- (۲)لېونے- ديوانه- مجذوب- مذوب- لټ- دې لفظ سره اکثر پانجو وئيلے شي- لکه جانجو پانجو- دَ بېکاره په معنو کښې استعماليږي-

جانجو بانجو:(جان-جو-بان-جو)صفت- واحد- مذکر- سُست پست- بېکاره- بې خونده- بې بنې-

جانجو پانجو:(جان-جو-پان-جو)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ جانجو بانجو-

جانجوخله:(جان-جوخ-له)اسم صفت- تاؤ راتاؤ- ګنجلک- الوزل- الوېل- هغه خبره چې هډو موازېدے نۀ شي-

جانجي:(جان-جي)اسم صفت- (۱)پرکالي- سستي- (۲)جانجو-

جانجي:(جان-جي)اسم- واحد- مذکر- (۱)جنجي- جنج يا وړا ته بللے شوے- دَ هلک لۀ لوری وادۀ ته بللے شوے- (۲)وګورئ جانجو- (۳)صفت- چغزی - نرم- نازک- کاغذی- ژر ماتېدونکے-

جانجيتوب:(جان-جي-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)سستي- ناراستي- (۲)په وړا کښې شاملېدنه- وراباڼے کېدنه-

جانجېدل:(جان-جې-دل)مصدر لازم- سستېدل- بېکاره کېدل- ناراسته کېدل- لټ کېدل-

جانجېدن:(جان-جې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جانجېدل-

جانجېدنګ:(جان-جې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جانجېدل-

جانجېدنه:(جان-جې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جانجېدل-

جانجېدۀ:(جان-جې-دۀ)حاصل مصدر- دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ جانجېدل-

جانجے:(جان-جے)اسم صفت- وګورئ جانجو-

جان خانے:(جان-خا-نے)اسم- واحد- مذکر- ترنګښ- سوده- کورے- کمبو- دَ بوسو وړلو کورے- شليته-

جاندار:(جان-دار)اسم- واحد- مذکر- تکړه- مضبوط- تندرست- صحت مند-

جاندم:(جان-دم)اسم- واحد- مذکر- دوزخ- جهنم- جمع جاندمونه- جاوجی

(م- عربی)-

جان ديده:(جان-دی-ده)اسم صفت- جان کشته- ګرځېدلے سړے-

جانستانی:(جان-س-تا-نی)اسم- ساه په زور اخستنه- روح وړنه- وژنه- (م- فارسی)-

جانشين:(جا-ن-شين)اسم صفت- قائم مقام- دَ چا په ځائې ناست- (م- فارسی)-

جان فشان:(جان-ف-شان)اسم صفت- ځان شيندونکے- جانفشانی کونکے-

جان فشاني:(جان-ف-شا-ني)اسم- مؤنث- همت- بهادری- کوشش- (اصل معنیٰ ځان شيندنه)(م- فارسی)-

جانقه:(جان-قه)اسم- واحد- مؤنث- کوسه- په ډيکه يا په لټو وهنه- ګوزار ورکونه-

جانکټ:(جان-کټ)اسم- واحد- مذکر- جاکټ- جېکټ- دَ لستوڼو واسکټ-

جانکټ:(جان-کټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جاکټ- (م- انګريزی)-

جان کټے:(جان-کټے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ جېلخانې هغه ملازم چې په قېديانو کار کوی- (۲)صفت- جان نثار- (۳)دَ غرغرې دَ تختې راکښونکے-

جان ګداز:(جان-ګ-داز)اسم صفت- مذکر- پسخاکی - ځان ويلې کونکے-

جانګړی:(جانګ-ړی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- جولنګی- هغه کټ چې پيارمې ئې سستې وی او ددې په وجه جولی وی-

جانګی:(جانګ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ يوې هغه عمودی لرګے چې موټې او کنده سره يو ځائې کوی-

جانګے:(جانګ-کے)اسم- واحد- مذکر- نېکر- کچه- کاچه- وړوکے پوشاک چې دَ لوبو يا لامبلو په وخت اچولے شي-

جانماز:(جا-ن-ماز)اسم- واحد- مذکر- دَ مصلې په رنګ دَ کپړې جوړ څادر چې نمونځ پرې کولے شي- جایٔ نماز- (م- فارسی)-

جان من:(جا-ن-من)اسم مرکب- زما ځانه- معشوقې يا محبوب ته وئيلے شي- (شاعری)(م- فارسی)-

جانثار:(جا-ن-ثار)اسم صفت- مذکر- جانباز- سرتېرے- ځان ځاروونکے- ځان قربانونکے- سر شيندونکے- مېړنے- زړور-

جان نثاری:(جا-ن-ثا-ری)اسم- واحد- مؤنث- جانبازی- ځان ځارونه- ځان قربانونه-

جانی:(جا-نی)اسم صفت- (۱)جان (ځان) سره منسوب- (۲)خوږ- عزيز- ګران- ډېر نژدې (ملګرے)(م- فارسی)-

جاڼ:(جاڼ)اسم- واحد- مذکر- شوملې- شينښې- تروې-

جاوتری:(جاو-تری)اسم- وګورئ جارکوب-

جاوجی:(جاو-جی)اسم- مذکر- (۱)جېلب- جلب- دَ وړوکی اس ساز او واګې- واګې-

جاوجی:(جاو-جی)اسم- پره جنبه- ملګرتيا-

جاوجی:(جاو-جی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ جامو لمن- دَ قميص لمن-

د څادر غاړه-

جاوجې:(جاو-جې)اسم- واحد- مذکر- فهرست- فهرست- لسټ- فرد-

جاودان:(جا-وي-دان)اسم صفت- ترتله- ترعمره- ابدي- لازوال- جاوېداني-(م- فارسي)-

جاوداني:(جا-وي-دا-ني)اسم- مؤنث- همېشګي- دوام- تل تر تله- پاتې کېدنه- (م- فارسي)-

جاودر:(جاو-در)اسم- واحد- مذکر- جودر- جمدر- يو قسم واښه چې په غنمو کښې کيږي- نباتاتي نوم اې وېناقې تړوا-

جاور:(جا-ور)اسم-واحد- مذکر- يو قسم بوټې- (افغانستان)-

جاوسا:(جاو-سا)اسم- واحد- مذکر- کرونج- بېخل- د لرګيو جوړه يوه رغاونه چې د اُبو منګی پرې ايښودې شي-

جاوکې:(جاو-کې)اسم- واحد- مذکر- د غز يو قسم چې د خشاک په طور استعماليږي- (م- هندي- جهاز)- نباتاتي نوم ټربرکس ګيليا(TURBRICS GAELECA)-

جاوله:(جاو-له)اسم- واحد- مؤنث- ژاوله- خاوله- زاوله- ژوغله- ژوله-

جاوو:(جا-وو)اسم- واحد- مذکر- يو قسم تريو خوند لرونکې بوټې- (افغانستان)-

جاوېد:(جا-وېد)اسم صفت- واحد- مذکر- جاودان- همېشه- دائم- (م- فارسي)-

جاه:(جاه)اسم- مرتبه- عزت- درجه- جلال- شان-(م- فارسي)-

جاه طلب:(جاه-ط-لب)اسم صفت- د ځان د پاره عزت غښتونکې- لوئي غښتونکې- (م- فارسي)-

جاه طلبي:(جاه-طل-بي)اسم- مؤنث- عزت غښتنه- غرت طلبي- ځانته بېځايه د لويي غښتنه کونه- (م- فارسي)-

جاه جلال:(جا-هو-ج-لال)اسم- رُعب او دبدبه- شان او شوکت- دبدبه- (م- فارسي)-

جاهل:(جا-هل)اسم صفت- واحد- مذکر- جهل لرونکې- بې علمه- ناپوهه- جمع جاهلان-

جاهليت:(جا-هي-لي-يت)اسم- (۱)د جاهل کېدو حالت- د جهل کار- بې علمي- ناپوهي- ناداني- (۲)د حضور عليه السلام د مبعوث کېدلو نه مخکښې دور- (م- عربي)-

جاهو:(جا-هو)اسم- يو قسم آتش بازي-

جاۍ:(جاۍ)اسم- واحد- مذکر- ځاې- مقام- جمع جايونه- (م- فارسي)-

جاۍ بند:(جاې-بند)اسم صفت- واحد- مذکر- په يو ځاې ولاړ- قيد شوې-

جاۍ ضرورت:(جا-يُ-ض-رو-رت)اسم- مذکر- د حاجت ځاې- بيت الخلا- (م- فارسي)-

جانداد:(جاې-داد)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوتر- ملکيت- مال حال- دفتر- زمکه- (۲)کښت- فصل-

جائز:(جا-ئز)اسم-واحد- مذکر- جواز لرونکې- روا- مناسب- ټيک- صحيح- درست- حلال- د شرعې او قانون مطابق- اصلي- مستند- د منظورۍ قابل- (م- عربي)-

جائزه ورونکې:(جا-ئ-زه-ور-ون-کې)اسم صفت- انعام اخستونکې- هغه څوک چې د ښهٔ کار په مقابل کښې درناوې تر لاسه کړي-

جائزه:(جا-ئ-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اندازه لګونه- قياس اخستنه- جاچ- پړتال- کتنه- حاضري- شمار- ګنتي- لټون- (۲)انعام- (افغانستان)-

جايګير:(جاې-ګير)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جاګير-

جايګيردار:(جاې-ګير-دار)اسم صفت- وګورئ جاګيردار-

جايګيرداري:(جاې-ګير-دا-ري)اسم- مؤنث- وګورئ جاګيرداري-

جايفل:(جاې-فل)اسم- واحد- مذکر- يوه ونه او د هغې ميوه چې په دارو کښې پکارولې شي- نباتاتي نوم- مي رستيکا مېس شټا (MYRISTICA MASCHATA)-

جب:(جب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جېب- جمع جبونه-

جب:(جب)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوند خشت- لوند- د جوب سره د سابقې په ډول راځي- لکه جب جوب- (۲)جبه- زيمناک ځاې- هغه زمکه چې اُبهٔ پکښې ولاړې وي-

جباته:(ج-با-ته)اسم- واحد- مؤنث- جيپټه- څادر- پټو- ټيکرې- لوپټه- جمع جباتې-

جباخانه:(ج-با-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- بارودخانه- جمع جباخانې-

جبار:(ج-بار)اسم صفت- مذکر- زورآور- (۲)د خداې تعالی يو صفتي نوم-

جباړه:(ج-با-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- اومته- واوره او باران چې په يو ځاې وريږي- جړباجړ- جبازه-

جبازه:(ج-با-زه)اسم- واحد- مؤنث- شرق- د واورې طوفان- د باران او د واورې په يو ځاې وربدنه- جړباجړ- جباړه- (افغانستان)-

جبال:(ج-بال)اسم- جمع- مذکر- غرونه- د جبل جمع- (م- عربي)-

جبان:(ج-بان)اسم صفت- واحد- مذکر- ويرندوکې- بارن- (م- عربي)-

جبتال:(جب-تال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جېتال-

جبجبو:(جب-ج-بو)اسم- واحد- مذکر- يو بوټې چې په جبو کښې کيږي-

جب جوب:(جب-جوب)اسم صفت- واحد- مذکر- لوند خُشت- خشت پوشت-

جبر:(جهٔ-بر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ظلم- سختي- زور- زياتې- بې رحمي- (۲)په حساب کښې د کسر اختصار- (افغانستان)- (۳)صفت- زورور عام طور سره د خوانۍ د صفت په طور استعماليږي-

جبراً:(جب-رن)متعلق فعل- په زور- په ظلم- په زياتي-

جبران:(جب-ران)اسم- تلافي کونه- د هغه څا سره مرسته کونه چې تاوان وررسېدلې وي- (افغانستان)-

جبرانول:(جب-را-ن-ول)مصدر متعدي- (۱)خساره ورکول- (۲)مرسته کول- (افغانستان)-

ی (ځي-رل)، ې (ضي-ره-ول)، ۍ (پيا-لي)، ئ (تن-دي) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

جبرانون:(جب-را-نَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ جبرانول-

جبرانونکے:(جب-را-نَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جبرانول-

جبرانونه:(جب-را-ن-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جبرانول-

جبرزنا:(ج-بر-زِ-نا)اسم- خبرزنا- پۀ زور زنا- زنا بالجبر-

جبرلوټ:(ج-بر-لوټ)اسم صفت- واحد- مذکر- ماتېدونکے ټوپک- ماتونے ټوپک- ملاماتے ټوپک- (افغانستان)-

جبروت:(جب-رۇت)اسم- لوئي والے- عظمت- جلال- دَ الله تعالی یو مخصوص صفت سره منسوب مقام- کبریائي-

جبري:(جب-ري)صفت/متلق فعل- (۱)دَ جبر سره منسوب- (۲)پۀ جبر- پۀ زور-

جبریه:(جب-ري-یه)صفت/متعلق فعل- (۱)جبر سره منسوب- (۲)هغه نظریه چې دَ هغې مطابق انسان پۀ خپلو کارونو کښې مختار نۀ دے-

جبري:(جَب-رې)اسم- (۱)ګلټېس- هغه تسمې چې پټلون یا جرابې پورې ټینګولے شي- (۲)هغه جرابې چې تر زنګونونو پورې وي- (افغانستان)-

جبل:(ج-بل)اسم- واحد- مذکر- دَ اَسپنې هغه تېره ډنډه چې زمکه پرې کنستے شي-

جبلت:(جِ-بل-لت)اسم- فطرت- پېدائشي خاصیت- (م- عربي)-

جبلي:(ج-ب-لي)اسم صفت- فطري- پېدائشي- (م- عربي)-

جبلی:(ج-ب-لی)اسم صفت- (۱)وړوکے قد لرونکے- (۲)کوني- کُنه ورکونکے- بې دربغه کُنه ورکونکے- (۳)غټ غېږ لرونکے-

جبندے:(ج-بن-دے)اسم صفت- (۱)بهر- دَ "دننه" ضد-

جبوړے:(ج-بو-ړے)اسم صفت- (۱)ناراسته- (۲)بې شرمه- بې غیرته- (۳)سست- پست- کوزسترګے-

جبون:(ج-بُون)اسم صفت- (۱)ویرندوکے- بزدل- (۲)تربوزک- مول- اوربوزي-

جبه:(جه-به)اسم صفت- (۱)هغه زمکه چې اُبۀ پکښې ولاړې وي- جب- ډنډه- بوخته- چقړه- (۲)اسم- واحد- مؤنث- هغه لوښے چې دَ ګانړي تېل پکښې جمع کیږي-

جبه:(ج-به)اسم- واحد- مؤنث- خرقه- شوکه- شوقه- شقه- خرته- خلقه- چپنه- یو پوشاک چې دَ جامو دپاسه اچولے شي- جمع جُبې-

جبه خانه:(ج-به-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- جبهه خانه- جباخانه- سلاخانه-

جبه خور:(ج-به-خور)اسم- واحد- مذکر- تانه او لونده خُشته زمکه- تاندوبه-

جبه زار:(ج-ب-زار)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه زمکه چې اُبۀ پکښې خپله راوځي-

جبه ړیرے:(ج-ب-ړي-رے)اسم صفت- بب ړیرے- ببه ړیرے- دَ لوئې درنې ړیرې ښُشتن- جمع جبه ړیرې-

جبهه:(جب-هه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ډله- دسته- جمات- محاذ- (۲)دَ جنګ دَ مېدان مخکښې برخه- سرحد- بانډر- (۳)تندے- (۴)دَ سپوږمۍ دَ یو منزل نوم- (افغانستان)- (م- عربي)-

جبین:(ج-بین)اسم- واحد- مذکر- تندے- وچولے- ټنډه- (م- فارسي)-

جبی:(ج-بی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو ازغن بوټے چې سرۀ ګلونه کوي- (۲)وګورئ جبی

جپ:(جپ)اسم- واحد- مذکر- ټپ- خاموش- بند- ترلے- چُپ چاپ- مؤنث جپه-

جپا:(ج-پا)اسم- واحد- مؤنث- دَ جفا مفغن- ظلم- زیاتے- زور-

جپالے:(ج-پا-لے)اسم- واحد- مذکر- وبا- مرګو- نرګه-

جپامرګو:(ج-پا-مر-ګو)اسم- واحد- مذکر- جپالے- مرګو- وبا- عامه وبا-(شاید چې دَ جفا او مرګو ترکیب وي)-

جپان:(ج-پان)اسم- واحد- مذکر- چوپان- لویه پولې- هغه پولې چې بازوګان ترې دَ لاندې وي-

جپتال:(جپ-تال)اسم- واحد- مذکر- دَ یو تال نوم- (م- هندي)-

جپړ:(ج-پړ)اسم- واحد- مذکر- جم جکړ- بادو باران- هغه باران چې سیلي ورسره وي او زیاتره دَ پشکال پۀ وخت کښې راځي-

جپړ:(ج-پړ)اسم- واحد- مذکر- عبث او بېکاره خیزونه- بې ښې سامان-

جپه:(ج-په)اسم- واحد- مؤنث- چپه- څپه-

جپه:(ج-په)اسم- چپه- هغه لرګے چې مانګان پرې کشتۍ چلوي- بېل-

جټ:(جټ)اسم صفت- واحد- مذکر- جټ- ان پړ- جاهل- ناپوه- بې علمه-

جټ:(جټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ړول- شکل- قیافه- بڼه- منظره- (۲)جوړه- جفت- جوټ- دَ طاق ضد-

جټ:(جټ)اسم صفت- واحد- مذکر- ساروان- اوښانو والا- اوښبه- اوښبون- (افغانستان)-

جټ:(جټ)اسم- واحد/جمع- مذکر- وزغونے- وچغنے-

جټان:(ج-ټان)اسم- واحد- مذکر- معمار- وستاکار- لوهار- ترکاڼ-

جټ بولي:(جټ-بو-لي)اسم- بې حیائي- بې شرمي- سپک کارونه- سپکه خله-

جټنه:(ج-ټ-نه)صفت- دننه- دَ بهر ضد- دَ جبندے ضد-

جټه:(ج-ټه)اسم- واحد- مؤنث- ټولے- غنډه- ډله- جتي- (م- هندي)-

جټني:(جۀ-ټه-ني)اسم صفت- خسک چرګ یا چرګه- هغه چرګ یا چرګه چې نۀ ټلنګي وي او نۀ انګریزي- ګوړمکي-

جټي سټي:(ج-ټي- سَ-ټي)صفت- (۱)سټي سټي- (۲)لونډ- (۳)بې پروا- (۴)بد خرڅه- فضول خرڅه- نا وادۀ کړے سړے-

جټ:(جټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)جاټ- (۲)پنجابے- (۳)ناړامه- ناپوهه- جاهل-

جټ:(جټ)اسم- واحد- مذکر- داره- فواره- پواره- (انګریزي)-

جټاټر:(ج-ټا-ټر)اسم- واحد- مذکر- هغه علاقه چې جَټ تام پکښې استوګه کوي-

جټانه:(ج-ټا-نه)صفت/متعلق فعل- وګورئ جټکانه-

جټ پټ:(جټ-پټ)متعلق فعل- چټ پټ- پټا پټ- ژر تر ژره- سمدستی- په ان پن کښې- په چوپټ کښې- فوراً- فټاپټ-

جټ پول:(جټ-پول)اسم- واحد- مذکر- د ښځو مکر او فریب-

جټتوب:(جټ-توب)اسم- جټوالے- ناپوهی- بې علمی-

جټکانه:(جټ-کا-نه)صفت/متعلق فعل- (۱)د جټ سره منسوب- (۲)د جټانو په طریقه-

جټکه:(جټ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خوزېدنه- لړزېدنه- جلکه- جیټکه- ذیکه- جوټه- (۲)د حلال ضد- حلال څاروی یا مارغان د خوراک د پاره د حلالولو په ځاۍ مردارونه-

جټکانه:(جټ-کا-نه)صفت/متعلق فعل- (۱)وګورئ جټکانه- (۲)ناڅاپی- ناګهانه-

جټه:(جِ-ټه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)غټه او څربه ښځه- (۲)ناړامه- ناپوهه- د جټ مؤنث-

جثه:(جُ-ثه)اسم- واحد- مؤنث- جوثه- شکل- صورت- څېره- بدن- (م- عربی)-

جج:(جَج)اسم صفت- واحد- مذکر- منصف- (م- انګریزی)-

جج:(جَج)اسم- واحد- مذکر- (۱)د زنې کُتے- د زنې کوغالے- (۲)د زنې لاندې غوښه- غرے- ججوره-

ججکے:(جج-کے)اسم تصغیر- وګورئ ججه-

ججلداغ:(جَ-جل-داغ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ملخ چې حلال وی-

ججوره:(جَ-جو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ججیره- د مارغانو معده- پوټه- جاغوره- (۲)پړسېدلے ورمېږ- مری- چمغړق- (۲)د ټوپک هغه برخه چې کارتوس پکښې ځانیږی- د ټوپک میګزین- چارجر-

ججوے:(جج-وے)اسم- واحد- مذکر- د لاله ګل- ریدی ګل- شندی ګل-

ججه:(جُ-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قلنګ- (۲)باج- (۲)جزیه-

ججے:(جَ-جے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مارغه- قره قل- جیجے-

ججیم:(جَ-حیم)اسم- واحد- مذکر- دوزخ- جهنم- جاندم- (م- عربی)-

جخ:(جَخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د أبو مچ- (۲)خګ- (۲)بړبوکی- پړومبی- حباب- بوړبوکی- (۴)فضول ګونی- بکواس- عبث خبرې-

جخت:(جَخت)صفت/متعلق فعل- (۱)نژدې- پېوست- (۲)سلامت- روغ- سالم- (۲)تقریباً-

جختواله:(جَخت-وا-له)اسم- برابری- نژدې واله- سمواله- (افغانستان)-

جختوالے:(جخت-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- نژدې والے- نزدېکت- پېوستوالے-

جختول:(جَخ-ته-ول)مصدر متعدی- نژدې کول- پېوست کول- یوځاۍ کول-

جختون:(جَخ-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ جختول-

جختونکے:(جَخ-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جختول-

جختونګ:(جَخ-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ جختول-

جختونه:(جَخ-ته-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ جختول-

جخته:(جَخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- د جخت مؤنث-

جختېدل:(جَخ-تې-دل)مصدر لازم- پېوست کېدل- نژدې کېدل- جخت کېدل- یوځاۍ کېدل-

جختېدن:(جَخ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جختېدل-

جختېدونکے:(جَخ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جختېدل-

جختېدنګ:(جَخ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جختېدل-

جختېدنه:(جَخ-تې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ جختېدل-

جختېده:(جَخ-تې-ده)حاصل مصدر- وګورئ جختېدل-

جخنی:(جَخ-نی)اسم- واحد/جمع- چخې- د سترګو کند-

جد:(جَد)اسم- واحد- مذکر- نیکه- د مور یا د پلار پلار- مورث اعلیٰ- (م- عربی)-

جداً:(جِ-دن)متعلق فعل- په ټینګه سره- په جدی توګه- په کلکه سره- (افغانستان)-

جدا:(جُ-دا)اسم صفت- بیل- ځانله- ګوښی- یواځې- یو طرف ته-(م- فارسی)-

جدا جدا:(جُ-دا-جُ-دا)اسم صفت- بیل بیل- ګوښی ګوښی- ځان ځان له- یواځې یواځې-

جدار:(جِ-دار)اسم- واحد- مذکر- دېوال- (عربی)-

جداګانه:(جُ-دا-ګا-نه)صفت/متعلق فعل- ګوښې- ځانته- بیل- یو طرف ته- په جدا ډول-

جدال:(جِ-دال)اسم- واحد- مذکر- (۱)جنګ و جدل- جنګ- دښمنی- جګړه- (۲)جال (عامیانه)(م- عربی)

جدائی:(جُ-دا-ئي)اسم- بیلتون- جدا والے- هجران- فراق-

جدت:(جِد-دت)اسم- واحد- مذکر- نوے والے- جدیدیت- (م- عربی)-

جدر:(جَ-در)اسم صفت- واحد- مذکر- د ځلورو کالو اوښ-

جدر:(جَ-در)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تباه- برباد- هلاک- (۲)سټه- بنیاد- جرړه- رده- بنسټ- اساس-

جدل:(جَ-دل)اسم- واحد- مذکر- (۱)جنګ جګړه- مخالفت- دشمنی- (۲)شور- کرس- بحث- (افغانستان)-

جدلیات:(جَد-لی-یات)اسم- جمع- د جدلیت جمع خو واحد ئې نه استعمالیږی- د منطق هغه قسم چې د استدلال قاعدې او طریقې ښئ-

جدلیاتی:(جَد-لی-یا-تي)اسم صفت- جدلیات سره متعلق-

جدلیاتی مادیت:(جَد-ل-یا-تي-ما-دی-یت) اسم- واحد- مذکر- د کارل مارکس د تاریخ په باره کښې نظریه چې د هغې مطابق تاریخ د دوو متضادو قوتونو تر منځه جګړه او د هغې په نتیجه کښې د یو درېم قوت مینځ ته راتلل دی- موجوده حالات د یو داسې طبقاتی کشمکش نتیجه ده چې د سرمایه دارو او زیارکښو ترمنځه دے او چې پکښې د سرمایه دارو

ئ" (ځی-رل)، ئ"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

مقصد دولت کښل او د زيارکښو مقصد د استحصال مخ نيوے کول دي-

جدوار :(جد-وار)اسم- واحد/جمع- مذکر- ژونداور- ماه پروين- يو دارو- نبيسي- د يو بوټي جره- ترياق- يو دارو چې د زهرو اثر وژني- (م- عربي)-

جدوجهد :(ج-دو-ج-هد)اسم- واحد- مذکر- هڅه- کوشش- محنت- مشقت- خواري- (م- عربي)-

جدور :(ج-دور)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو د ژبې پورته کولو دارو- (افغانستان)-

جدول :(جد-ول)اسم- واحد- مذکر- (۱)فهرست- لسټ- (۲)حاشيه- د کتاب د پاڼې نه کښېر چاپېر راکښلې کرښې- (۳)شېډول- (م- فرانسيسي، يوناني، عربي)-

جدول کشي :(جد-ول-ک-شي)اسم- فهرست جوړونه- حاشيه راکښنه- شېډول جوړونه- (م- فارسي، عربي)-

جدي :(ج-دي)صفت- جد سره متعلق- د نيکهٔ لهٔ خوا- موروثي- عربي کښې پهٔ دې شد دے- (م- عربي)-

جدي :(ج-دي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لسم آسماني برج چې د ښکروري بزې پهٔ شکل څرګندولے شي- (۲)د هجري شمسي کال لسمه مياشت چې د انګريزي مياشتې د ۲۲ دسمبر نه د ۲۰ جنوري پورې وي- (۳)هغه جغرافيائي کرښه چې د استوائي کرښې نه سوېل خوا ته پهٔ ۲۷ نه ۲۳ درجې تيريږي- عربي کښې پهٔ "ی" شد دے- (م- عربي)

جدي :(ج-دي)متعلق فعل/صفت- واحد- مذکر- (۱)فعال- تکړه- (۲)حقيقتي- د حقيقت لهٔ مخې- (۳)پهٔ جديت- (م- عربي)-

جديت :(ج-دي-يت)اسم- (۱)کوشش- تکړه والے- (۲)تېزوالے- تېزي- (م- عربي)-

جديد :(ج-ديد)صفت- نوے- د موجوده وخت- تازه-

جديدي :(ج-دي-دي)صفت- جديد سره منسوب-

جديديت :(ج-دي-دي-يت)اسم- واحد- مذکر- نوے والے- نوے توب- د جديد کېدو حالت-

جذاب :(ج-ذاب)صفت- راکښونکے پهٔ زړهٔ پورې - جذب کونکے- پهٔ ځان کښې ځايونکے-(م- عربي)-

جذام :(ج-ذام)اسم- واحد- مذکر- پم- پمن توب- يو جلدي مرض- (م- عربي)-

جذامي :(ج-ذا-مي)اسم صفت- د جذام سره منسوب- د جذام مريض-

جذب :(ج-ذب)اسم- واحد- مذکر- (۱)راکښنه- اثر- کشش- (۲)جوش- پهٔ ځان کښې ځايونه- (۲)د بېخودي کېفيت چې پهٔ بزرګانو خلقو راځي- (م- عربي)-

جذبات :(جذ-بات)اسم- جمع- د جذبه جمع- (م- عربي)-

جذباتي :(جذ-با-تي)اسم صفت- واحد- مذکر- جذبې سره متعلق- جوشي- جذبه کښې راتلونکے- هغه څوک چې زر پهٔ څهٔ خبره پهٔ جوش کښې راځي-

جذبول :(جذ-ب-ول)مصدر متعدي- جذب کول- راکش کول- ځان ته راکښل- د ځان سره مل کول-

جذبون :(جذ-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ جذبول-

جذبونکے :(جذ-ب-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جذبول-

جذبونه :(جذ-ب-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جذبول-

جذبه :(جذ-به)اسم- واحد- مؤنث- د ذهن هيجان- جوش - د نفسياتو پهٔ اصطلاح کښې د ذهن لهٔ هغو درېو خاصيتونو څخه يو چې د حقيقت ادراک پرې کېدے شي نور دوه خاصيتونه يې پهٔ ترتيب احساس او علم دي-

جذبېدل :(جذ-بې-دل)مصدر لازم- راکښل کېدل- جذب کېدل- راڅکېدل- يوې خوا ته کېدل-

جذبېدلے :(جذ-بې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ جذبېدل-

جذبېدن :(جذ-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جذبېدل-

جذبېدنګ :(جذ-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جذبېدل-

جذبېدنه :(جذ-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جذبېدل-

جذبېدونکے :(جذ-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جذبېدل-

جذبېدهٔ :(جذ-بې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ جذبېدل-

جذر :(ج-ذر)اسم- واحد- مذکر- (۱)جرړه- اصل- ريشه- (۲)د رياضي پهٔ اصطلاح کښې د مربع ضد- يو مربع شوے عدد چې بېرته خپل اصل ته راګرځولے شي لکه ۲۵ نه پينځهٔ- يا- کلمه ۹ نه ۲ -

جر :(جر)اسم صفت- (۱)مغلوب- پاتې- پر- (۲)ماتې- شکست- (۳)الا- تحقيري کلمه- (۴)لهٔ خرهٔ نه د آواز ايستلو د پاره مخصوصه کلمه- (مصدر- کول/کېدل)-

جر :(جر)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه لښتے چې د زمکو چاپېره د زياتي اُبو د پاره کنستے شوے وي- ابراب- زاکښ- زابر- (۲)د منډې پهٔ مقابله کښې تاکلې ځاې ته رسېدنه او لاس لګونه-

جرابه :(ج-را-به)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ وړي، نائيلون يا نور قسمهٔ تارونو جوړه د پښو د اغستو کڅوړه- جمع جرابې-

جرات :(جر-ات)اسم- واحد- مذکر- بهادري- زړهٔ ورتيا- شجاعت- مېړنتوب- جسارت-

جراپه :(ج-را-په)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ جرابه-

جراثيم :(ج-را-ثيم)اسم- جمع- مذکر- نرۍ واړهٔ چينجي چې بې لهٔ خوردبينه پهٔ نظر نهٔ راځي- (واحد يې جرثومه ده)(م- عربي)-

جراح :(جر-راح)اسم صفت- واحد- مذکر- سرجن- د زخمونو علاج کونکے- ټيرونکے- (م- عربي)-

جراحت :(ج-را- حت)اسم- واحد- مذکر- (۱)جراحي- د پرهر زخم د ټيرلو کار- د جراح پېشه- سرجري- د زخمونو د علاج کار- (۲)ټپ- زخم- پرهر- پرار- پرمار- (م- عربي)-

"زبر" (خ-بهٔ-ره)، "زورکے" (شل)، "پېش" (نو-کا-ره)، "زېر" (ک-تاب)، "جزم" (شکوڼ)، "ه" (ز-ړه)، "هٔ" (پو-ہي-دهٔ)

جراحي:(جر-را-حي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ جراحت ورومبی معنیٰ-

جراد:(ج-راد)اسم- واحد- مذکر- مَلَخ- (م- عربی)-

جرار:(ج-رار)اسم صفت- مذکر- (۱)راکښونکے- اصل معنیٰ په وسله او نورو الاتو مسلح او د بې شمېره فوځ، لښکر وغېره د پاره- (۲)چالاک- خبر لوځ- (۳)زړه ور- تکړه- (۴)ګرندے- (م- عربی)-

جراز:(ج-راز)اسم- واحد- مذکر- (۱)نشتر- (۲)خنجر- (۳)شل-

جراسک:(ج-را-سک)اسم- واحد- مذکر- کیړړے- خرړے- کرړے- یو قسم چینجے-

جرائم:(ج-را-ئم)اسم- جمع- مذکر- د جرم جمع- جرمونه-

جرب:(جرب)اسم- واحد- مذکر- (۱)پم- پوم- درب- خارښت- د څرمنې یوه بیماری چې د وینې د خرابۍ له کبله پېدا کیږي- (۲)کورمنګ- خنګلی چرګ- (م- عربی)-

جرپے:(جر-پے)اسم صفت- واحد- مذکر- کړتن- کړتو- غرتن- غرتو- بکواسی- پوچ ګو-

جرثقیل:(جر-ثه-قیل)اسم- واحد- مذکر- کرېن- مشینی پهلوان- (عربی)-

جرجر:(جر-جر)اسم صوت- (۱)جر- د خره د شوق د راپارولو د پاره مخصوصه کلمه- (۲)الا- بو- چا پورې د خندا کولو په وخت عموماً ونیلے شي-

جرجوړ:(جر-جوړ)اسم- واحد- مذکر- جړوبے- جوړجوړے- وړوکے ابشار-

جرجوړې:(جر-جو-ړې)اسم تصغیر- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ جرجوړ-

جرجیر:(جر-جیر)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ساګ چې اوم خوړلے کیږي- تره تېزک- نباتاتی نوم د پاره وګورئ ترتیزک-

جرح:(ج-رح)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بحث- نکته چینی- شهادت باطلونه- (۲)پرهر- زخم- ټپ- (م- عربی)-

جرده:(جر-ده)اسم- واحد- مذکر- هغه اس چې پلار ئې له عربی نسله او مور ئې له بله نسله وي-(م- عربی)-

جرړه:(جر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- بېخ- ریشه- بنیاد-

جرړې:(جر-ړې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم چرچڼه-

جرس:(ج-رس)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګنټې- ږغږغه- غټ ګینګرے- غره- (۲)یو قسم مارغه چې د سیندونو په غاړو کښې وسي- (م- فارسی)-

جرسوټ:(جر-سوټ)اسم صفت- واحد- مذکر- جرموټ- مشروټ- مشروټے- واکو- نېغوکے- ټټو-

جرسوټے:(جر-سو-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ جرسوټ-

جرعه:(جر-عه)اسم- واحد- مؤنث- ګوټ- غړپ- (م- عربی)-

جرعه نوش:(جر-عه-نوش)اسم صفت- واحد- مذکر- ګوټ کونکے- ګوټ څښونکے- شراب په ګوټ ګوټ څښونکے- (د جرعه عربی او نوش فارسی مرکب)-

جرغاتکه:(جر-غا-ت-که)اسم- واحد- مؤنث- د یوې مرغۍ نوم-

جرقه:(جر-قه)اسم- واحد- مونث- (۱)لمبه- سپرغۍ- بڅرے- (۲)جرق- جړک- (م- فارسی)-

جرک:(جرک)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو یو قسم دارو-

جرکانے:(جر-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- چونکے- جونکے- د سودا نه سېوائی مفت څیز- سرباری- جمع جرکانی-

جرکېدل:(جر-کې-دل)مصدر لازم- (۱)مغلوبېدل- پړ کېدل- شکست خوړل- (۲)ګېوړ کېدل- انجړېدل- بناخه کېدل-

جرکېدن:(جر-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جرکېدل-

جرکېدنګ:(جر-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جرکېدل-

جرکېدنه:(جر-کې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ جرکېدل-

جرکېدونکے:(جر-کې-دون-کے) اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جرکېدل-

جرکېده:(جر-کې-ده)حاصل مصدر- وګورئ جرکېدل-

جرګ:(جرګ)اسم- مقدار- اندازه- جمع جرګونه- (افغانستان)-

جرګانه:(جر-ګا-نه)متعلق فعل- د جرګې په ډول- د جرګې په طور-

جرګاوو:(جر-ګا-وو)اسم صفت- واحد- مذکر- جرګتو- د جرګې غړے- جرګیټو-

جرګتو:(جر-ګه-تو)اسم صفت- مذکر- د جرګې قابل- جرګاوو- د جرګې غړے- جرګټو-

جرګټو:(جر-ګه-ټو)اسم صفت- مذکر- وګورئ جرګتو-

جرګه:(جر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غونډه- مرکه- ټولے- د مشورې مجلس- د څه خبرې د حل کولو په غرض راغونډ شوی خلق- (۲)مصلحت- مشوره- صلاح- جمع جرګې (م- فارسی)-

جرګه ګوټې:(جر-ګه-ګو-ټې)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- وګورئ جرګه ګۍ-

جرګه ګۍ:(جر-ګه- ګۍ)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- جرګه ګوټې- وړه جرګه-

جرګه مار:(جر-ګه-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ جرګاوو-

جرګه وال:(جر-ګه-وال)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- وګورئ جرګاوو-

جرلک:(جر-لک)اسم- جرلک- خرلک- یو خړرنګے سخت اغزے چې په تندمار کښې زیات پیدا کیږي-

جرلګ:(جر-لګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جرلک-

جرلنډ:(جر-لنډ)صفت- سرکش- سرکښ-

جرلنډے:(جر-لن-ډے)اسم- فساد- غوبمه- غوبل- پسات- (۲)فساد کونکے- (اسم فاعل)-

جرم:(ج-رم)اسم- واحد- مذکر- (۱)د قانون د لاندې قابل سزا حرکت- جنایت- (۲)غلطي- خطا- ګناه- جمع جرمونه جرائم-(م- عربی)-

جرمانه:(جر-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- تاوان- ناغه- مالی سزا- جمع جرمانې-

جرم بوټې:(ج-رم-بو-ټې)اسم- ګوټې- ګړوټې- ګړټې-

جرم کار:(ج-رم-کار)اسم صفت- واحد- مذکر- مجرم- خطاکار- ګناهګار-

ځ (څی-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ئ (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

جرمن:(جر-من)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تکړه- (۲)طنزاً- مشروټ- دَ انګرېزی دَ توری جرمن نه مفغن-

جرمنی:(جر-م-نی)اسم صفت- واحد جمع- مؤنث- (۱)دَ جرمنی سره منسوب- (۲)دَ جرمنی ژبه- (۳)یو خاص قسم تماچه-

جرمنے:(جر-م-نے)اسم- واحد- مذکر- یو دات چې لوښی ترې جوړیږی- المونیم-

جرموړه:(جر-مو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- لړمه- متیاکه- غنډارے- پهٔ بدن دَ څهٔ زمرژن څیز دَ ګرځېدو پهٔ وجه پېدا کېدونکې متیاکه چې خارښت کوی- جمع جرموړې-

جرنده:(جرن-ده)اسم- واحد- مؤنث- چندره- تاله- کُلپ- قفل-

جرنګ:(جرنګ)اسم صوت- وګورئ شرنګ-

جرنګانے:(جرنګ-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- ټنګ ټنګے- ژغژغے- جرس- چرچنے- کینکړے-

جرنګاوو:(جرنګ-کا-وو)اسم- واحد- مذکر- شرنګاوو- شړنګاوو- جړنګاوو-

جرنګنے:(جرنګ-که-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جرنګانے-

جرنګول:(جرنګ-ګ-ول)مصدر متعدی- شرنګول- شړنګول-

جرنګون:(جرنګ-ګ-ون)حاصل-مصدر وګورئ جرنګول-

جرنګونګ:(جرنګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ جرنګول-

جرنګونه:(جرنګ-ګ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جرنګول-

جرنګونکے:(جرنګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع جرنګونکی- مؤنث جرنګونکې وګورئ جرنګول-

جرنګېدل:(جرنګ-کې-دل)مصدر لازم- شرنګېدل- شړنګېدل- جړنګېدل- (افغانستان)-

جرنګېدن:(جرنګ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جرنګېدل-

جرنګېدنګ:(جرنګ-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جرنګېدل-

جرنګېدنه:(جرنګ-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جرنګېدل-

جرنګېدونکے:(جرنګ-کې-دون-کے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ جرنګېدل-

جرنېل:(جر-نېل)اسم- واحد- مذکر- دَ فوځ لوئ افسر- (م- انګریزی)-

جرنېل:(جر-نېل)اسم صفت- (۱)مشروټ- مغرور- (۲)لرے- دَ خنازر دَ معدې یوه حصه-

جرنېلی:(جر-نے-لی)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ جرنېل سره منسوب- دَ سړک او هسپتال دَ صفت پهٔ طور- (۲)الوني او عام-

جرنېلی:(جر-نے-لی)اسم- واحد- مؤنث- مشروټي- مغرورتیا-

جرنېلتوب:(جر-نېل-توب)اسم- وګورئ جرنېلی ۲-

جرنېلتیا:(جر-نېل-تیا)اسم- وګورئ جرنېلتوب-

جروپ:(ج-روپ)اسم- واحد- مذکر- مسی- یو قسم دَ سر کالے-

جروتل:(جر-و-تل)مصدر متعدی- جاروتل- ګرخېدل- ستنېدل- منع کېدل- مخ ګرځول- څرخول-

جروتن:(جر-و-تن)حاصل مصدر- وګورئ جروتل-

جروتنګ:(جر-و-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ جروتل-

جروتنه:(جر-و-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جروتل-

جروتونکے:(جر-و-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جروتل-

جروح:(ج-روح)اسم- جمع- مذکر- زخمونه- اپرېشنونه- پرهرونه- داغونه- (م- عربی)-

جرویی:(ج-ر-وی-نی)اسم- واحد- مؤنث- نقاب- مخ پرونے- روبند-

جره:(ج-ره)اسم- جری- جیشے- سپے بوټے- کوترے بوټے- یو ازغن بوټے چې دَ سړی جامو او کړو بزو پورې نښلی-

جره:(ج-ره)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)الوند- نا وادهٔ کړے- مجرد- (۲)اځره- یواځې- ګوښی- تنها-

جره:(ج-ره)اسم- واحد- مذکر- یو ښکاری مارغهٔ چې دَ باز نر وی-

جره توب:(ج-ره-توب)اسم- مذکر- (۱)الوندتوب- (۲)تنهاوالے- یواځې توب-

جره والے:(ج-ره-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ جره توب-

جری:(ج-ری)اسم- مذکر- یو قسم بوټے- وګورئ جره-

جری:(ج-ری)اسم صفت-(۱)اوښتونکے- تغیر خوړونکے- بدلېدونکے- (افغانستان)-

جری:(ج-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ ترکاڼ هغه اوزار چې دَ لرګی مینځ څیری-

جری:(ج-ری)اسم صفت- زړه ور- جرات لرونکے- بهادر- (م- فارسی)-

جریان:(جر-یان)اسم- واحد- مذکر- (۱) یوه بیماری چې پکښې بې لهٔ خوښې انزال کیږی-(۲)روانی- جاری پاتې کېدنه- بهېدنه-

جریب:(ج-ریب)اسم- واحد- مذکر-(۱) دَ زمکې دَ پېمائش پېمانه- څلور کناله- اتیا مرلې- (۲)هغه زنځیر چې زمکه پرې ناپ کولے شی- (۳)دَ زمکې دَ پېمائش یوه اله-(م- فارسی)-

جریبا:(ج-ری-بن)متعلق فعل- دَ جریب (جیرب)پهٔ حساب-

جریب کش:(ج-ریب-کش)اسم صفت- دَ زمکې دَ ناپ کولو پهٔ وخت زنځیر راکښونکے- ناپ کونکے-

جریبن:(ج-ری-بن)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې پاڼې ئې ډېره ښهٔ خوشبو لری- نباتاتی نوم جیے رین یم (GERANIUM)- کوزه پښتونخوا کښې ورته ست جریبن وائی-

جریبول:(ج-ری-ب-ول)مصدر متعدی- جریب کول- زمکه جریب کول- زمکه پهٔ جریباتو کښې وېشل یا تقسیمول-

جریبون:(ج-ری-ب-ون)حاصل مصدر- وګورئ جریبول-

جریبونکے:(ج-ری-ب-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جریبول-

جریبونګ:(ج-ری-ب-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ جریبول-

جریبونه:(ج-ری-ب-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جریبول-

جریده:(ج-ری-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ښاخ- څانګه- (۲)بې پاڼو څانګه-

(۳)یادګار- (۴)مجرد- (۵)ګزېټېډ افسر- (۶)هغه مجله چې خبرونه هم لري-

جریز:(ج-ریز)اسم- واحد- مذکر- شیره- اتوب- ګړوبے- اړوب- اریز-

جریمه:(ج-ري-مه)اسم- واحد- مؤنث- جرمانه- ناغه- مالي سزا- بانده- تاوان- (افغانستان)-

جړی:(ج-ړي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لښتي لښتي- چوړی- شیلي شیلي- رختونه- رخونه-

جړ:(جړ)صفت- تاؤ راتاؤ- کږوږ- انجړ بنجړ-

جړ:(جړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)جرړه- ریښه- بنسټ- بېخ- اساس- بنیاد- ستن- جړه- (۲)زهر- (م- هندی)-

جړ:(جړ)اسم صوت- شړ- چړ- د اُبو یا بل مایع څیز د توئېدو آواز-

جړاکي:(ج-ړا-کي)صفت- (۱)سټغ سرے- (۲)بې وقوف-

جړامبو:(جړام-بو)اسم صفت- سست پست- لټ- بې کاره-

جړانګو:(جړانګ-کو)اسم- واحد- مذکر- (۱)فلوس- پلوس- یو بوټے چې د جلابو په طور استعمالیږي- (۲)وله- خروله- بېد مجنون- د نباتاتي نوم د پاره وګورئ وله-

جړاو:(ج-ړاؤ)صفت- سنګار- سنبال- په غمیو ډک شوے- (ش- هندی)-

جړاوول:(ج-ړا-و-ول)مصدر متعدي- سنیګارول- په غمیو ښانسته کول-

جړاوون:(ج-ړا-و-ون)حاصل مصدر- وګورئ جړاوول-

جړاوونکے:(ج-ړا-و-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جړاوول-

جړاوونګ:(ج-ړا-و-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ جړاوول-

جړاوونه:(ج-ړا-و-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جړاوول-

جړاوۀ:(ج-ړا-وۀ)اسم- واحد- مذکر- یو ډول کالے چې په غمیو ښکلے کړے شو ے وي-

جړاوېدل:(ج-ړا-وې-دل)مصدر لازم- جړاو کېدل- سینګار کېدل- ډولي کېدل- غمی کېدل-

جړاوېدن:(ج-ړا-وې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جړاوېدل-

جړاوېدنګ:(ج-ړا-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جړاوېدل-

جړاوېدنه:(ج-ړا-وې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جړاوېدل-

جړاوېدنکے:(ج-ړا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جړاوېدل-

جړاوېدۀ:(ج-ړا-وې-دۀ)حاصل مصدر- د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ جړاوېدل-

جړبړ:(جړ-بړ)اسم- واحد- مذکر- جاړ- جلاب- جولاب-

جړپړ:(جړ-پړ)صفت- په یو بل کښې ننښتے- په یو بل کښې ننوتے- کږوږ- بې ترتیبه- جړپړ-

جړپن:(جړه-پن)اسم صفت- واحد- مذکر- بکواسي- ټټن- ډټن- کاږاک- فضول غږېدونکے-

جړپول:(جړه-پ-ول)مصدر متعدي- فضول غږول- ډټول-

جړپون:(جړه-پ-ون)حاصل مصدر- وګورئ جړپول-

جړپونکے:(جړه-پ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جړپول-

جړپونګ:(جړه-پ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ جړپول-

جړپونه:(جړه-پ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جړپول-

جړپېدل:(جړه-پې-دل)مصدر لازم- فضول غږېدل- ډټېدل- ټټېدل-

جړپېدن:(جړه-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جړپېدل-

جړپېدنګ:(جړه-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جړپېدل-

جړپېدنه:(جړه-پې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جړپېدل-

جړپېدونکے:(جړه-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جړپېدل-

جړپېدۀ:(جړه-پې-دۀ)حاصل مصدر- د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ جړپېدل-

جړجړ:(جړ-جړ)اسم صفت- واحد- مذکر- پوچ- خالي- بې ځایه- فضول- بیهوده-

جړجړ:(جړ-جړ)اسم صوت- شړ شړ- د اُبو د راتوئېدو آواز-

جړجړی:(جړ-ج-ړي)اسم صوت- وګورئ جړجړ

جړجړے:(جړ-ج-ړے)اسم- واحد- مذکر- جړوب- خړوبے- ابشار- چرته چې اُبو په تېزئ سره ښکته رابهیږي-

جړجوړ:(جړ-جوړ)اسم صوت- وګورئ جړجوړ-

جړس:(جړس)اسم صوت- درز- درب- ترق- د دوو یا زیاتو سختو څېزونو د راپرېوتو یا یو تر بله د جنګېدو اواز- تراغ-

جړق:(جړق)اسم- واحد- مذکر- جړک- درز- درب- تکان- دیکه- (افغانستان)-

جړکانے:(جړ-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- جړکاڼے- سرباري- اضافي- چونګے- جونګے-

جړک جړوک:(جړک-جړوک)اسم- لړزېدنه- جړق جړوق- غچاري- چق چړوق- دیکه-

جړمري:(جړ-م-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- جړمهره- جړي- جړمري- مارجړي- زهرمهره-

جړمري:(جړ-م-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ جړمري-

جړمن:(جړ-من)صفت- مذکر- زهر لرونکے- زهرژن-

جړموړه:(جړ-مو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- جړموړه- لړمه- مټاکه- تمبکه-

جړند:(ج-ړند)اسم- واحد- مذکر- جونګ- وګورئ جیلغ- جمع جړندونه-

جړنګ:(ج-ړنګ)اسم- واحد- مذکر- جړند- ښېلي- جوړنګ- جېرنګ- تانګ- جیلغ- د هندوانې یا ختکی د بوټې ښېلي چې په زمکه خوره تلې وي- جمع جړنګونه-

جړنګانی:(جړنګ-کا-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- جڼ جڼے- د ماشومانو چڼ چڼے-

جړنګاوو:(جړنګ-کا-وو)اسم- واحد- مذکر- ګینګړے- ژغږغے- جړنګاک- شرنګاړ- (افغانستان)-

جړنګهار:(جړنګ-کا-هار)اسم صوت- شړنګهار- شرنګا- د کنګروګانو

ی" (ښی-زل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پیا-لي)، "ے"(تن-دیے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

آوازونه- (افغانستان)-

جړنګے:(جړنګ-کے)اسم صوت- وګورئ جړنګهار-

جړوب:(جړوب)اسم صوت- شړپ- شړوپ- غړوپ- پهٔ اوبُو کښې دَ څهٔ څيز دَ غرزېدو آواز-

جړوبے:(ج-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- آبشار- څړوبے- زاوه- ګړونګه- جړجړی-

جړوپړ:(ج-ړو-پړ)صفت- پهٔ يو بل کښې نښتے- جاخه- وګورئ جړپړ-

جړه:(جړ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- جرړه- وله- ريښه- بنياد- اصل-

جړه:(ج-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ګلاب ګل- ګلاپ- ګلاب- (افغانستان)-

جړی:(ج-ړی)اسم صوت- (۱)دَ سپی غپا- (۲)پرله پسې اوازونه- (افغانستان)-

جړی باجړی:(ج-ړی-باج-ړی)اسم- جمع- (۱)چقړې- چيکړې- خټې- چکړ- دَ ژمی مسلسل باران- (۲)اسم صفت- غټې مټې-

جړېدل:(ج-ړې-دل)مصدر لازم- جوړېدل- جېړېدل- پهٔ ګېډه کښې دَ ګړګړ اواز پيدا کېدل- قراقر کول- کړړاکول- پهٔ ګېډه کښې ګړمار پيدا کېدل-

جړېدن:(ج-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ جړېدل-

جړېدنګ:(ج-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ جړېدل-

جړېدنه:(ج-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جړېدل-

جړېدونکے:(ج-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جړېدل-

جړېدهٔ:(ج-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ جړېدل-

جړی:(ج-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ ژمی پرله پسې باران- پهٔ يو مخ باران- (۲)مارجړی- زهرموره- (۳)قے- کانګه- يوه بيماری- (۴)يو غرينز بوټے چې دَ کانګې ناروغتيا ترې پيدا کيږی-

جز:(جز)اسم صوت- (۱)دَ حلالې پهٔ وخت دَ وينې دَ دارې آواز- (۲)دَ سرو کړو غوړو يا دَ داغلو آواز-

جزا:(ج-زا)اسم- واحد- مؤنث- بدله- عوض- صله- (م- عربی)-

جزائر:(ج-زا-ئر)اسم- جمع- دَ جزيره جمع- ټاپوګان-

جزائی:(ج-زا-ئی)صفت- دَ جزا سره منسوب- دَ جزا- دَ جزا وړ-

جزائېل:(ج-زا-ئېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)جزيل- دَ پخوانی زمانې يو ډول ټوپک- (۲)صفت- تېز حرکت لرونکے څيز-

جزائېلچي:(ج-زا-ئېل-چي)اسم صفت- واحد- مذکر- جزيلچی- دَ جزائېل چلونکے-

جزبز:(جز-بز)اسم- (۱)دَ ماشومانو يوه لوبه- (۲)قهر- غصه- سوخت-

جزبزائي:(جز-بهٔ-زائي)اسم صوت- جز- دَ وينې دَ دارې آواز- دَ بګار يا دَ داغ پهٔ وخت دَ تېلو يا غوړو آواز-

جزبندی:(جز-بن-دی)اسم- جزوبندی- څهٔ څيز پهٔ صفحه صفحه کتڼه- پهٔ يو ځائې کونه-

جزر:(ج-زر)اسم- واحد- مذکر- دَ سمندر دَ اُبو ښکته کېدهٔ- دَ مد ضد- (م- عربی)-

جزع:(ج-زع)اسم- بې صبری- بې قلاری- ناقلاری- (م- عربی)-

جزع پزع:(ج-زع-پ-زع)اسم- دَ جزع فزع عامېانه قرأت- نارې سورې- چغې چفارې- ژړا انګولا- (م- عربی)-

جزغاله:(جز-غا-له)اسم- واحد- مؤنث- ګکړی- کسکر- بوګړی- کروپے- خخغولے- جيجق- جغجغی- جزغولے- جمع جزغالې- (افغانستان)-

جزکے:(جز-کے)اسم صوت- وګورئ جز-

جزګی:(جز-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پوسکی- پسکه- باد-

جزګی مار:(جز-ګی-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- پوسکن- ټسن- پسکاوڼ- پسن-

جزګے:(جز-ګے)اسم- واحد- مذکر- (۱)جشکے- شزګے- څزګے- څزګے- خخکے- چشکے- کيشکے- ششوکے- زرکے- شوشع- ژزګے- شيشغے- دَ شکوڼ دَ خاندان يو وړوکے ښناور چې تېرهٔ تېرهٔ غشی لری ماران خوری او کورونو کښې اموخته کيږی-

جزم:(ج-زم)اسم- واحد- مذکر- (۱)غوروندے- غورندے- وقف- دَ ټکی دَ ساکن کولو علامت- (۲)مضبوطه اراده- کلکه اراده- (۳)يقين- (م- عربی)-

جزو:(ج-زو)اسم- واحد- مذکر- برخه- بخره- حصه- ټکړه- جمع جزونه-

جزوبندی:(ج-زو-بن-دی)اسم- دَ کتاب جزونه بېلونه او ګنډنه- وګورئ جزبندی-

جزودان:(ج-زو-دان)اسم- واحد- مذکر- بستـه- دَ کـتـابـونـو دَ ايښولو کڅوره-

جزول:(ج-ز-ول)مصدر متعدی- (۱)کباب يا غوښه پهٔ غوړو کښې تلول- (۲)خوروّل- آزارول-

جزواً:(جز-ون)متعلق فعل- پهٔ ټکړه ټکړه- پهٔ برخه برخه- پهٔ نيمګړی ډول- (م- عربی)-

جزون:(ج-ز-ون)حاصل مصدر- وګورئ جزول

جزونګ:(ج-ز-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ جزول-

جزونه:(ج-ز-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ جزول-

جزونکے:(ج-ز-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ جزول-

جزوی:(جز-وی)صفت/متعلق فعل- (۱)دَ جزو سره منسوب- نيمګړے- (۲)پهٔ نيمګړی ډول-

جزمار:(جز-مار)اسم صوت- وګورئ جز-

جزيره:(ج-زی-ره)اسم- واحد- مؤنث- ټاپو- هغه وُچه چې ګېر چاپېره يې اُبهٔ وی- جمع جزيرې او جزائير-(م- عربی)-

جزيره نما:(ج-زی-ره-نُ-ما)اسم- واحد- مذکر- ټاپووزمه- دَ ټاپو يا جزيرې پهٔ شان- هغه وُچه زمکه چې دريوو خواؤ ته يې اُبه وی-

جزئېل:(جز-ئېل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جزائېل-

جزئېلچي:(جز-ئېل-چي)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ جزائېلچي-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "هٔ"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-ښې-دهٔ)

خغلند :(خَغَ-لند)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ منډه- پهٔ دوړه- پهٔ درړه- ترپند- زغلند- خغلېدونکے- دٙ منډې پهٔ حالت کښې- دٙ ترپ پهٔ حال کښې- دٙ تاخت پهٔ حال کښې- دٙ خغاستې پهٔ حال کښې-

خغلندے :(خَغَ-لَن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خغلېدونکے- تښتېدونکے- (۲)ذلیل- بدبوتے- (۳)عاجز- خوار- غریب- (۴)ډارن- وېرېدونکے- بُزدله- ډارېدونکے- (۵)افسوس کونکے- ارمان کونکے- ارماني- ارمانژن-

خغلول:(خَغَ-له-وَل)مصدر متعدی- (۱)پهٔ تېښته کول- پهٔ منډه کول- پهٔ ترپ کول- درړول- ورړول- (۲)پهٔ مخه کول- پهٔ مخه اخستل- شکست ورکول- لرې کول-

خغلولے:(خَغَ-له-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خغلولی- مؤنث خغلولې- وګورئ خغلول-

خغلون:(خَغَ-له-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خغلول-

خغلونکے:(خَغَ-له-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خغلول-

خغلونګ:(خَغَ-له-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خغلول-

خغلونه:(خَغَ-له-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خغلول-

خغلوهٔ:(خَغَ-له-وهٔ)حاصلِ مصدر او دٙ ماضی استمراری دٙ واحد غائب صیغه- وګورئ خغلول-

خغلېدل:(خَغَ-لې-دَل)مصدرِ لازم- ترپېدل- پهٔ منډه کېدل- منډه وهل- پهٔ تېښته کېدل- لرې کېدل- مېدان پرېښول- شکست خوړل- پهٔ شا کېدل- بکېلے کېدل- بکېل کېدل- بنګېل کېدل-

خغلېدلے:(خَغَ-لې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خغلېدل-

خغلېدن:(خَغَ-لې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خغلېدل-

خغلېدنګ:(خَغَ-لې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خغلېدل-

خغلېدنه:(خَغَ-لې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خغلېدل-

خغلېدونکے:(خَغَ-لې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خغلېدل-

خغلېدهٔ:(خَغَ-لې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دٙ ماضی استمراری دٙ واحد غائب صیغه- وګورئ خغلېدل-

خغنی:(خغ-نی)اسم صفت- واحد- مذکر- شرم- شواړ- ژاولی-

خغورل:(خغو-رَل)مصدرِ متعدی- ژغورل- بچ کول- ساتل- (افغانستان)-

خغول:(خهٔ-غُ-وَل)مصدرِ متعدی- جزول- جوزول- جغول- پهٔ غوړیو یا تېلو کښې سرهٔ کول-

خغولے:(خهٔ-غه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خغول-

خغون:(خهٔ-غُ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خغول-

خغونځ:(خَغونځ)اسم- خغونز- حرکت- دٙ مچیو او چینجیو حرکت- خوځما خوځ- غونځېدنه-

خغونځاوې:(خَغُون-ځا-وې)اسم- جمع- ګڼه ګوڼه- ګڼه او بې نظمه ګڼه ګوڼه- ازدحام-

خغونځول:(خَغُون-ځ-وَل)مصدر متعدی- پارول- غزول- غونځول- دٙ مچیو پارول او پهٔ حرکت راوستل- پهٔ ګېره او بې نظمه ګڼه ګوڼه راوستل-

خغونځولے:(خَغُون-ځ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خغونځول-

خغونځون:(خَغُون-ځ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خغونځول-

خغونځونکے:(خَغُون-ځ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خغونځول-

خغونځونګ:(خَغُون-ځ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خغونځول-

خغونځونه:(خَغُون-ځ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خغونځول-

خغونځوهٔ:(خَغُون-ځ-وهٔ)حاصلِ مصدر او دٙ ماضی استمراری دٙ واحد غائب صیغه- وګورئ خغونځول-

خغونځېدل:(خَغُون-ځې-دَل)مصدرِ لازم- جوزېدل- جزېدل- جغېدل- غزېدل- پارېدل- ځنګ پهٔ ځنګ کېدل- دٙ مچیو او چینجیو ښورېدل یا پهٔ یو ځاې حرکت کول-

خغونځېدلے:(خَغُون-ځې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خغونځېدل-

خغونځېدن:(خَغُون-ځې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خغونځېدل-

خغونځېدنګ:(خَغُون-ځې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خغونځېدل-

خغونځېدنه:(خَغُون-ځې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خغونځېدل-

خغونځېدونکے:(خَغُون-ځې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خغونځېدل-

خغونځېدهٔ:(خَغُون-ځې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دٙ ماضی استمراری دٙ واحد غائب صیغه- وګورئ خغونځېدل-

خغونځے:(خَغُون-ځے)اسم- وګورئ خغونځ-

خغونکے:(خهٔ-غُ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خغول-

خغونګ:(خهٔ-غُ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خغول-

خغونه:(خهٔ-غُ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خغول-

خغونې:(خَغو-نې)اسم- جمع- مذکر- (۱)جغونی- دٙ چېلو وېښتهٔ- (۲)اوږدهٔ وېښتهٔ-

خغوهٔ:(خهٔ-غُ-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ خغول-

خغه پر:(خغه-پر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٙ جغ پورته نیمه حصه- (۲)لویه توره-

خغېدل:(خهٔ-غې-دَل)مصدرِ لازم- جوزېدل- جزېدل- جغېدل- پهٔ غوړیو کښې غوښه، کباب یا پیاز سرهٔ کېدل-

جغېدلے:(خهٔ-غې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خغېدل-

خغېدن:(خهٔ-غې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خغېدل-

خغېدنګ:(خهٔ-غې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خغېدل-

خغېدنه:(خهٔ-غې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خغېدل-

خغېدونکے:(خهٔ-غې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خغېدل-

خغېدهٔ:(خهٔ-غې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دٙ ماضی استمراری دٙ واحد غائب صیغه- وګورئ خغېدل-

خکلول:(خُکَ-لَ-وَل)مصدر متعدی- ربړول- خپه کول- خفه کول- ازارول-

تکلیف ورکول- خورول-

خکلولے:(خُک-ل-وۀ- لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خکلول-

خکلون:(خُک-ل-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خکلول-

خکلونکے:(خُک-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خکلول-

خکلونګ:(خُک-ل-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خکلول-

خکلونه:(خُک-ل-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خکلول-

خکلوۀ:(خُک-ل-وۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خکلول-

خکلېدل:(خُک-لې-دَل)مصدرِ لازم- زورېدل- کړېدل- خورېدل- ربړېدل- پۀ تکلیف کښې کېدل- ازارېدل- خفه کېدل- ناراضه کېدل- جکېدل-

خکلېدلے:(خُک-لې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خکلېدل-

خکلېدن:(خُک-لې-دَن) حاصلِ مصدر- وګورئ خکلېدل

خکلېدنګ:(خُک-لې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خکلېدل-

خکلېدنه:(خُک-لې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خکلېدل-

خکلېدونکے:(خُک-لې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خکلېدل-

خکلېدۀ:(خُک-لې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خکلېدل-

خکندن:(خۀ-کن-دَن)اسم- واحد- مذکر- خنکدن- خلکدم- خلکدن- دَ سا دَ وتلو حالت- ګران ساعت- دَ مرګ کېدو حالت- آخېر- دَ سا ختنه- دَ سا وتنه- خکدن- زنکدن-

خکه:(خۀ-که)حرف جار- پۀ دې سبب- پۀ دې وجه- پۀ دې دلیل- لۀ دې کبله- پۀ دې علت-

خکه:(خُ-که)اسم- واحد- مؤنث- نکاح کړې ښځه-

خګ:(خُګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپین پوک څیز چې دَ روانو اُبو پۀ سر کښې ، دَ څاروی شخوند وملو، دَ پور پخېدو او پۀ داسې نورو حالتونو کښې پیدا کیږی- کپ- کف- ګف- خګے- (۲)خاورین لوښے چې ماستۀ پکښې شاربلے کیږی- جګ- جک-

خګال:(خُ-ګال)اسم- واحد- مذکر- مېده ړوړی- چوری شوې او پۀ ښوروا کښې لونده شوې ړوړی - هغه ړوړی چې دَ ښوروا دَ پاره مېده شوې وی- پۀ ښوروا کښې ماته کړې شوې ړوړی- وره نمړی- پېنډه- تربل-

خګڑن:(خُګ-ڑن)اسم صفت- واحد- مذکر- خګ لرونکے- خګ دار- خګلن-

خګخور:(خُګ- خور)اسم- واحد- مذکر- ماهی خورکه- کب خورکه- یو قسم مرغۍ چې دَ اُبو پۀ سر ګرځی او کبان خوری-

خګر:(خُ-ګر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ېینه- ځیګر- اینه- دَ وجود دننه یو اندام- (۲)ټټر- سینه- (۳)خوږ- زړۀ ته نزدې- (۴)زړۀ ورتیا- مېړانه- مړانه-

خګرخون:(خُ-ګر-خون)اسم- دَ ځیګر وینه- غم- تکلیف- کړاؤ- فکر-

خګرور:(خُګ-رَ-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تکړه- تورزن- بهادر- نر- زړۀ ور- دَ لوئ سینې خاوند- دَ زیاتې حوصلې خاوند- (۲)بې رحمه-

خګلانه:(خُګ-لا-نه)اسم- واحد- مذکر- هغه کټوی چې شوملې پکښې شاربلے کیږی- غړکه-

خګلن:(خُګ-لن)اسم صفت- واحد- مذکر- خګ لرونکے- خګن- خُګ دار- (۲)هغه څوک چې دَ خُلې نه ئې خګ بهیږی- لړبېزن- لاړڅاځے-

خګوارل:(خُګ-وا-رَل)مصدرِ متعدی- تکرارکول- یو شے باربار یادول-

خګوارن:(خُګ-وا-رَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خګوارل-

خګوارونکے:(خُګ-وا-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خګوارل-

خګوارنګ:(خُګ-وا-رَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خګوارل-

خګوارنه:(خُګ-وا-رۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خګوارل-

خګوارۀ:(خُګ-وا-رۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خګوارل-

خګېدل:(خُ-ګې-دَل)مصدرِ لازم- خټکېدل- شاربلے کېدل- خګ پرېښودل- خګ پرېښول-

خګېدن:(خُ-ګې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خګېدل-

خګېدنګ:(خُ-ګې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خګېدل-

خګېدنه:(خُ-ګې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خګېدل-

خګېدونکے:(خُ-ګې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خګېدل-

خګېدۀ:(خُ-ګې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خګېدل-

خل:(خل)اسم- واحد- مذکر- (۱)خلا- چمک- پرق- برېښېدا- زلق- چڼک- پڼک- (۲)سخته تنده- جل- (۳)وار- باره- پېره- نوبت- (۴)دَ کپړې یا دَ برجې نه جوړ شوے لوئ پوش چې یخنۍ نه دَ بچ کولو یا دَ بار وړلو پۀ وخت دَ څاروی پۀ شا اچولے کیږی- خل- کته- جول- زل- (۵)جال- دَ مرزانو، مرغیو یا مهیانو دَ نیولو جال- پنی- (۶)دَ جولا جاله- (۷)چل- (۸)حېوان- خناور- ځنګر- چارپایۀ- (۹)ماشوم- (۱۰)توریې لړې (وریځې) باران او سیلۍ- طوفان- تیارۀ- دَ خُول غلط تلفظ- (۱۱)خطره-

خلا:(خُ-لا) اسم صفت- واحد- مؤنث- خلق- چڼک- پڼک- خل- برېښنا- چمک- خلېدار- برېښېدا- جلا- رڼا- خلقا- تاؤ- جمع خلاګانې-

خلاباندې:(خُ-لا-بان-دې)صفت- یو بل دَ پاسه-

خلان:(خُ-لان)اسم صفت- واحد- مذکر- خلاند- روښانه- پړقېدونکے- چڼکېدونکے- خلېدونکے- خلاؤ-

خلاند:(خُ-لاند)اسم صفت- واحد- مذکر- برېښېدونکے- خلېدونکے- خلا لرونکے- خلان-

خلاندے:(خُ-لان-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- پړقېدونکے- روښانه-

خلاؤ:(خُ-لاؤ)اسم صفت- واحد- مذکر- خلاند- خلېدونکے-

خلبل:(خل-بل)اسم صفت- واحد- مذکر- جلبل- پړقېدونکے- خلېدونکے- برېښېدونکے- خلقېدونکے- روښانه- چڼکېدونکے- پڼکېدونکے-

خلبلان:(خَل-بـه-لانّ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ خلبلاند-
خلبلاند:(خل-بـه-لانّدّ)اسم صفت- واحد- مذکر- حیران- پریشان- بې ارامه- ناټیکاوه- ناقراره- بې قراره- ناقلاره- ناکراره- بې ارامه-
خلبلاندول:(خَل-بَ-لانّ-دَ-وَل)مصدر متعدی- خوروول- کړول- پریشانه کول- ناکراره کول- ناقلاره کول- ناقراره کول- بې آرامه کول-
خلبلاندون:(خَل-بَ-لانّ-دَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلاندونکے:(خَل-بـه-لانّ-ده-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلاندونګ:(خَل-بـه-لانّ-ده-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلاندونه:(خَل-بـه-لانّ-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلاندوهٔ:(خَل-بـه-لان-ده-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلبلاندول-
خلبلانده:(خَل-بَ-لانّ-ده)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- بې آرامه- ناقلاره- پریشانه- لالهانده-
خلبلانده:(خَل-بَ-لانّ-ده)اسم- مؤنث- ډېر خَلند-
خلبلاندېدل:(خَل-بَ-لانّ-دې-دَل)مصدر لازم- پریشانه کېدل- خفه کېدل- ناقلاره کېدل- بې آرامه کېدل- غمژن کېدل- خورل کېدل-
خلبلاندېدن:(خَل-بَ-لانّ-دې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلاندېدنګ:(خَل-بَ-لانّ-دې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلاندېدنه:(خَل-بَ-لانّ-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلاندېدونکے:(خَل-بَ-لانّ-دې-دُونّ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلاندېدهٔ:(خَل-بَ-لان-دې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلانول:(خَل-بَ-لا-نَ-وَل)مصدر متعدی- وګورئ خلبلاندول-
خلبلانون:(خَل-بَ-لا-نَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلانونکے:(خَل-بَ-لا-نَ-وُونّ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلانونګ:(خل-بَ-لا-نَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلانونه:(خَل-بَ-لا-نَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندول-
خلبلانوهٔ:(خَل-بَ-لا-نَ-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلبلاندول-
خلبلانېدل:(خَل-بَ-لا-نې-دَل)مصدر لازم- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلانېدن:(خَل-بَ-لا-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلانېدنګ:(خَل-بَ-لا-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلانېدنه:(خَل-بَ-لا-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلانېدونکے:(خَل-بَ-لا-نې-دُونّ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلانېدهٔ:(خَل-بَ-لا-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلبلاندېدل-
خلبلے:(خَل-بَ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- روښانه- پرقېدونکے- بربښېدونکے- خلېدونکے- پړکېدونکے- چنګېدونکے- جل او بل کېدونکے-
خلي بلي:(خه-لي-بـه-لي)اسم- مؤنث- بې ارامي- ناقلارى-
خلځے:(خل-ځے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم مېږوکے-
خلښت:(خُ-لښت)اسم- واحد- مذکر- چنګ- خل- خلا- پرق- خلق- پړک-
خلق:(خُ-لق)اسم- مذکر- وګورئ خلښت-
خلقول:(خَل-قَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)پهٔ ژبه وهل- پهٔ بدوردو او ناکاره خبرو ژبه استعمالول- دَ چا خلاف ژبه خوزول- (۲)وګورئ خلکول-
خلک:(خَلکّ)اسم- واحد- مذکر- خلا- بربښ- خلښت- خلق-
خلک پړک:(خه-لک-پَ-ړک)اسم مرکب- اب وتاب- غوړتر- رنګ روغن- پالش شوے- چې پرق پروق کوی او خلقیږی-
خلک ناک:(خُلکّ-ناک)اسم صفت- مذکر- روښان- بربښ ناک-
خلکول:(خَل-کَ-وَل)مصدر متعدی- خل او بل کول- خلبول- چنګول- پړکول- پرقول- پرکول- خلقول-
خلکون:(خَل-کَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خلکول-
خلکونکے:(خَل-کَ-وُونّ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خلکول-
خلکونګ:(خَل-کَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خلکول-
خلکونه:(خَل-کَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلکول-
خلکوهٔ:(خَل-کَ-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلکول-
خلکېدل:(خَل-کې-دَل)مصدر لازم- خلېدل- زلقېدل- پرقېدل- چنګېدل- بربښېدل- خلېدل- پړکېدل-
خلکېدلے:(خَل-کې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خلکېدل-
خلکېدن:(خَل-کې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خلکېدل-
خلکېدنګ:(خَل-کې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خلکېدل-
خلکېدنه:(خَل-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلکېدل-
خلکېدونکے:(خَل-کې-دُونّ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خلکېدل-
خلکېدهٔ:(خَل-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلکېدل-
خلل:(خُ-لَل)مصدر- (۱)دَ وروکی ماشوم دَ مالش نه پس لاس پښې تړل (چې اودهٔ شی)- ماشوم پهٔ اوربنی کښې تړل- (۲)تړل- بارکول- پهٔ کوری یا ترنګړ کښې څهٔ سامان وغېره تړل یا بارول-
خلل:(خُ-لَل)اسم- واحد- مذکر- ضرر- نقصان- تاوان- ظلم-
خلما:(خل-ما)اسم- واحد- مذکر- زلمیتوب- ځوانی- خلمیتوب- شباب-
خلموټے:(خَل-مو-ټے)اسم- واحد- مذکر- ژېے- ژیکے- خلمکے- ځوانکے- چې ایله ایله خلمی توب ته رسېدلے وی- چې ایله ایله ئې شونډه شنه شوې وی- نوے نوے زلمے شوے-

ئ (څـی-رَل)، ې (مې-ره-وَل)، ی (پیا-لـی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

خلميتوب:(خل-مي-توب)اسم- واحد- مذكر- خواني- خلمينه-
خلمينه:(خل-مي-نه)اسم- واحد- مذكر- وګورئ خلميتوب-
خلمے:(خل-مے)اسم- واحد- مذكر- خوان- زنے- ژنے-
خلند:(خَ-لند)اسم صفت- واحد- مذكر- (۱)خلاند- روښانه- پنکېدونکے- برېښېدونکے- (۲)ظالم- ستمګر- جابر- زبردست- تېرے کونکے- جور کونکے-
خلندوکے:(خَ-لن-دو-کے)اسم صفت- واحد- مذكر- پرېښېدونکے- خلقېدونکے- جلوبل کېدونکے- پرکېدونکے- پرقېدونکے- چنکېدونکے- پنکېدونکے-
خلنده:(خَ-لَن-ده)اسم صفت- واحد- مذكر- ښکاره- پرقېدونکے-
خلوبي:(خَ-لو-بي)اسم- جمع- مؤنث- تاؤ را تاؤ يو قسم مشهور خوارهٔ- زلېبي- جلبي- خوارهٔ- خلېبي- جبليبي-
خلوبے:(خَ-لو-بے)اسم- واحد- مذكر- پېريان اُبهٔ- سراب-
خلوكه:(خَ-لُو-كه)اسم- مؤنث- دَ زړهٔ رکونه-
خلول:(خَ-لَ-ول)مصدر متعدي- زلقول- پرقول- چنکول- پنکول- برېښول-
خلولے:(خَ-لَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګورئ خلول-
خلون:(خَ-لُون)اسم- واحد- مذكر- (۱)دَ اُبو لوئ مشک چې پهٔ حېوانانو باندې وړل کيږي- مشک- ژے- زے- رابيا- (۲)بار-
خلون:(خَ-لَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ خلول-
خلونکے:(خَ-لَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- وګورئ خلول-
خلونګ:(خَ-لَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خلول-
خلونه:(خَ-لَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلول-
خلوهٔ:(خَ-لَ-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خلول-
خله:(خَ-له)اسم- مؤنث- (۱)سعي- کوشش- مڅه- (۲)خل- وار- نوبت- پېره- کرت- (۳)مينه- شوق- هوس- تلوسه- خوامش- اُميد- بې قراري- (۴- صفت)پرېشانه- سترے- ناقلاره- وارخطا- بې ارامه- (۵)حمله- جمع خلې-
خله:(خَ-له)متعلق فعل- دَ خبله مخفف- خبله- يو لهٔ بله-
خله خوله:(خَ-له-خو-له)اسم مركب- كوشش- سعي-
خلې:(خَ-لې)اسم- مؤنث- شرم- حيا-
خلې:(خَ-لې)اسم- مؤنث- خانله معنىٰ نهٔ لري- دَ لاحقې پهٔ توګه استعمالولے شي لکه هلې خلې-
خلياره:(خل-يا-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه خانګو چې ماشومان پکښې خنګولے کيږي- خانګو- ټال- ګواره-
خلې خولې:(خَ-لې-خو-لې)اسم مركب- دَ سفر سامان-
خلېدل:(خَ-لې-دل)مصدر لازم- برېښېدل- پرقېدل- چنکېدل- پنکېدل- زلقېدل-
خلېدلے:(خَ-لې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګورئ خلېدل-
خلېدن:(خَ-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خلېدل-
خلېدنګ:(خَ-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خلېدل-
خلېدنه:(خَ-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلېدل-
خلېدونکے:(خَ-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- وګورئ خلېدل-
خلېدهٔ:(خَ-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خلېدل-
خلے:(خه-لے)اسم- واحد- مذكر- خلمے-
خم:(خم)فعل- دَ فعل حال دَ واحد متكلم صيغه- زهٔ روان يم- خمه-
خما:(خَ-ما) ضمير- زما- دما- ايمو- (دَ زما زړه املا)-
خماخماني:(خَ-ما-خَ-ما-ني)اسم- مؤنث- (۱)فرق- فرخ- (۲)حرص- لالچ-
خمبار:(خَم-بار)اسم- خمبل- خبول- ستركې بې واره بې واره پټول او پرانستل- دَ سترګو باڼهٔ اُوچتول او ټيټول-
خمبک:(خَم-بک)اسم- واحد- مذكر- زومبق- خومبق- جونبک- غنچه- غنچک- دَ سپنسو يا تارونو وغيره يا دَ ګلونو غنچک- جمع خمبکونه-
خمبل:(خَم-بَل)مصدر متعدي- (۱)باڼهٔ رپول- زمبل- خنبول- وهل- (۲)خنبل- (۳)بې عزته کول- بې آبه کول-
خمبلے:(خَم-بهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګورئ خمبل-
خمبن:(خَم-بَن)حاصل مصدر- وګورئ خمبل-
خمبنګ:(خَم-بَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خمبل-
خمبنه:(خَم-بهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمبل-
خمبول:(خَم-به-ول)مصدر متعدي- دَ سترګو باڼهٔ رپول-
خمبون:(خَم-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ خمبول-
خمبونکے:(خَم-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع خمبونکي- مؤنث خمبونکې- وګورئ خمبول-
خمبونګ:(خَم-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خمبول-
خمبونه:(خَم-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمبول-
خمبوهٔ:(خَم-به-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خمبول-
خمبېدل:(خَم-بې-دل)مصدر لازم- دَ سترګو باڼه رپېدل-
خمبېدل:(خَم-بې-دل)مصدر لازم- پهٔ ورو ورو تلل- پهٔ مزه مزه تلل- ورو ورو قدمونه اخستل- سست سست تلل- پهٔ قلار قلار تلل-
خمبېدل:(خَم-بې-دل)مصدر لازم- پهٔ چا باندې کالي امبارېدل- پېړ زيات كالي اچول-
خمبېدلے:(خَم-بې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګورئ خمبېدل-
خمبېدن:(خَم-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خمبېدل-
خمبېدنګ:(خَم-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خمبېدل-
خمبېدنه:(خَم-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمبېدل-
خمبېدونکے:(خَم-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- وګورئ خمبېدل-
خمبېدهٔ:(خَم-بې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه-

وګورئ ځمبېدل-

ځمکنی:(ځمهٔ-که-نی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ زمکې- زمکې- زمکې ته منسوب-

ځمکوال:(ځمهٔ-که-وال)اسم- واحد- مذکر- دَ زمکې مالک- دَ زمکې خاوند- (افغانستان)-

ځمکه:(ځمهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ شمسی نظام هغه سیاره چې بنیادم پرې استوګه کوی- زمکه- مځکه- (۲)مخ- سطح- (دَ زمکې زړه املا)-

ځمل:(ځمل)مصدرِ متعدی- ځمبل- بانهٔ رپول- سترګې رپول- سترګې خوزول-

ځملے:(ځمهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- مېښل شوے- مړل شوے- یو تر بله وهل شوے- لت پت شوے- شیت پیت شوے-

ځمنځ:(ځمنځ)اسم- واحد- مذکر- رونق- ړول- توکه- طرز-

ځمنه:(ځمهٔ-نه)اسم- مؤنث- وعده- لوظ- قول- اقرار- ژمنه-

ځموږ:(ځموږ)ضمیر- جمع- وګورئ زمونږ- (دَ زموږ زړه املا)-

ځمول:(ځمهٔ-وَل)مصدرِ متعدی- ځبول- بانهٔ رپول- سترګې وهل- سترګک وهل- ځمبول-

ځمون:(ځمهٔ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځمول-

ځمونکے:(ځمهٔ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځمول-

ځمونګ:(ځمهٔ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځمول-

ځمونه:(ځمهٔ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځمول-

ځموهٔ:(ځمهٔ-وهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ځمول-

ځن:(ځن)اسم- واحد- مذکر- یو مشهور توکے- جیم-

ځنازه:(ځه-نا-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ جنازه-

ځناور:(ځهٔ-نا-وَر)اسم صفت- واحد- مذکر- نادان- کم عقل- ناپوه-

ځناور:(ځهٔ-نا-وَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)څیرونکے حیوان- (۲)حیوان- څارویے- څلوربول- ډنګر-

ځناورتوب:(ځهٔ-نا-وَر-توب)اسم- (۱)حیوانیت- وحشی توب- حیوان توب- (۲)ناپوهی- بې عقلی- نادانی- حماقت- کم عقلی- ناړامی-

ځناورخویه:(ځهٔ-نا-وَر-خو-یه)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ ځناورو پهٔ شان خوئ لرونکے- خوارخویه- بدخویه-

ځنب:(ځمب)اسم- مذکر- دَ سترګو رپ-

ځنبر:(ځن-بَر)اسم- ځانبه- جامنه-

ځنبل:(ځم-بَل)مصدرِ متعدی- ځمبل- رپېدل- غړول- پهٔ رپ رپ اړول- ژر ژر غړول او پټول- ړکول- خوځول-

ځنبول:(ځم-به-وَل)مصدرِ متعدی- ځنبل- ځمبل- رپول- غړول- سترګې ژر ژر غړول او بندول- ځمبول-

ځنبولے:(ځم-به-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ځنبول-

ځنبون:(ځم-به-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنبول-

ځنبونکے:(ځم-به-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځنبول-

ځنبونګ:(ځم-به-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنبول-

ځنبونه:(ځم-به-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنبول-

ځنبوهٔ:(ځم-به-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنبول-

ځنبه:(ځم-به)اسم- بانهٔ رپونه- سترګه وهنه- سترګې ځبونه-

ځنبېدل:(ځم-بې-دَل) مصدر لازم- سترګې زنبېدل- سترګې رپېدل- بانهٔ رپېدل- بانهٔ ښوربېدل- خوځېدل- ړکېدل- ړقېدل-

ځنبېدلے:(ځم-بې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ځنبېدلی- مؤنث ځنبېدلې- وګورئ ځنبېدل-

ځنبېدن:(ځم-بې-دَن) حاصلِ مصدر- وګورئ ځنبېدل-

ځنبېدنګ:(ځم-بې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنبېدل-

ځنبېدنه:(ځم-بې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنبېدل-

ځنبېدونکے:(ځم-بې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځنبېدل-

ځنبېدهٔ:(ځم-بې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ځنبېدل-

ځنځ:(ځنځ)اسم- واحد- مذکر- ځوری- پټکنے- زنځ- زنځ- زمچ- پټکرے- پټکړے-

ځنځرائ:(ځن-ځه-رائ)صفت- ځر برګ (لکه بټېر)-

ځنځری:(ځن-ځ-ری)اسم- واحد- مؤنث- یو خاص قسم ګل کاری یا نقش چې دَ زنځیر پهٔ شان کړی کړی وی-

ځنځلېر:(ځنځ-لېر)اسم- واحد- مذکر- یو قسم تور ځنځے چې دَ ښکلا دَ پاره پهٔ کېږدی باندې ځوړندولے شی-

ځنځول:(ځن-ځ-وَل)مصدرِ متعدی- ځاځکے ځاځکے تویول- ټکے ټکے تویول- ځځول- ورو ورو نچوړی کول- پهٔ شومتیا سره څهٔ څیز چا ته ورکول- کم څیز ورکول- لږ څهٔ ورکول- تکلیف ورکول-

ځنځولی:(ځن-ځو-لی)اسم- ړنډولی- څهٔ څیز پهٔ څلورو کسانو اخستل- څهٔ څیز پهٔ څادر کښې اخستل- یو سړے دَ لاسونو او پښو نه پهٔ څلورو کسانو اخستل-

ځنځولے:(ځن-ځ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ځنځول-

ځنځون:(ځن-ځ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنځول-

ځنځونکے:(ځن-ځ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځنځول-

ځنځونګ:(ځن-ځ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنځول-

ځنځونه:(ځن-ځ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنځول-

ځنځوهٔ:(ځن-ځ-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځنځول-

ځنځه:(ځن-ځه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سرسوبله- شوبله- زنځه- شوبلکه- سرسوبنده- یو قسم پنجه وره حشره- (۲- صفت)لالچی- جنجالی سړے- چیچړ بنیادم- ضدی- ځیلی-

خنځېدل:(خَن-ځي-دَل)مصدرِ لازم- ځنېدل- ځاځکے ځاځکے تونېدل-
خنځېدلے:(خَن-ځي-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خنځېدل-
خنځېدن:(خَن-ځي-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خنځېدل-
خنځېدنګ:(خَن-ځي-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خنځېدل-
خنځېدنه:(خَن-ځي-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خنځېدل-
خنځېدونکے:(خَن-ځي-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خنځېدل-
خنځېدهٔ:(خَن-ځي-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خنځېدل-
خنځی:(خَن-ځی)اسم- واحد- مؤنث- زنځیرک- دَ ښځو یو قسم ګاڼه (کالے)-
خنخول:(خَن-خَوَل)اسم- لهٔ حاله تلنه- پهٔ زړهٔ باندې دَ خفګان چپه- بې سدی- بې هوشي- بې خودي- پهٔ زړهٔ باندې پرېشانی راتلنه-
خندر:(خَن-دَر)اسم- ګړی-
خنډ:(خَنډ)اسم- واحد- مذکر- ایسارتیا- ډیل- تاخیر- درنګ- معطلی- دېری- ډېره موده تېرېدنه- ډېر ساعت تېرېدنه-
خنډان:(خَن-ډان)اسم صفت- جمع- مذکر- زاړهٔ- لرغوني- دَ ډېر وخت-
خنډمن:(خَنډ-مَن)اسم صفت- واحد- مذکر- ټال شوے- ناوخته شوے- اټال شوے- خنډن- معطل شوے- دَ خپل وخت نه وروستو پاتې شوے-
خنډن:(خَن-ډَن)اسم صفت- واحد- مذکر- وړاندنیے- مخکښینے- پخوانے- لرغونے- قدیمی- دَ ډېرې مودې- خنډمن-
خنډنے:(خَن-ډهٔ-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لرغونے- پخوانے- وړاندنیے- قدیمی- وختینے- (۲)اټال- ایسار- معطل-
خنډنے کوکو:(خَن-ډهٔ-نے-کو-کو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ګل- پتونے ګل-
خنډوالے:(خنډ-وا-لے)اسم- ټالېدنه- اټالېدنه- ناوخته والے- خنډېدنه- معطلی- معطلېدنه- خنډېدنه- دَ خپل وخت څخه اوښتهٔ- ایسارتیا- ډیل-
خنډول:(خَن-ډَ-وَل)مصدرِ متعدی- ټالول- ایسارول- ناوخته کول- اټالول- معطلول- دَ ټاکلی وخت څخه زیات وخت وربانديې تېرول-
خنډولے:(خَن-ډَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خنډول-
خنډون:(خَن-ډَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خنډول-
خنډونکے:(خَن-ډَ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خنډول-
خنډونګ:(خَن-ډَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خنډول-
خنډونه:(خَن-ډَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خنډول-
خنډوهٔ:(خَن-ډَ-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ خنډول-
خنډی:(خَن-ډی)اسم- جمع- مذکر- مغه غوټې چې دَ ځادر یا رومال پیڅکو ته دَ ښکلا او مضبوطوالی دَ پاره ورکولے شي-
خنډېدل:(خَن-ډي-دَل)مصدرِ لازم- اټالېدل- ایسارېدل- ناوخته کېدل- ټالېدل- معطلېدل- دَ خپل وخت نه زیات وخت وربانديې تېرېدل-
خنډېدلے:(خَن-ډي-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خنډېدل-

خنډېدن:(خَن-ډي-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خنډېدل-
خنډېدنګ:(خَن-ډي-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خنډېدل-
خنډېدنه:(خَن-ډي-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خنډېدل-
خنډېدونکے:(خَن-ډي-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خنډېدل-
خنډېدهٔ:(خَن-ډي-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خنډېدل-
خنډے:(خَن-ډے)اسم- واحد- مذکر- بوټکه- بودی- چوټے-
خنغلی:(خَن-غَ-لی)اسم- جمع- مذکر- زنګنی- زوړ پرتوګ ته دَ ښېې نه ښکته دَ زړې کپړې پائنڅې اچول-
خنغوخه:(خَن-غو-خه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم وُنه-
خنغوزے:(خَن-غو-زے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چلغوزے-
خنکدن:(خَن-کَه-دَن)اسم- واحد- مذکر- آخری سلګی- دَ مرګ حالت- ځکندن- زلکدم- آخر وخت- خلکدم- دَ نزعې حالت- دَ ژوند آخری سلګې- اخېر- ګران ساعت- سا وتنه- دَ مړکېدو حالت-
خنکندن:(خَن-کَن-دَن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خنکدن-
خنګر:(خَن-ګَر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بې سده- بې خوده- بې هوشه- بې حسه- بې هوشه-
خنګل:(خَنګ-ګَل)مصدرِ متعدی- پهٔ ټال جوټې وهل-
خنګل:(خَنګ-ګَل)اسم- واحد- مذکر- مغه ځائې چې زیاتې او ګڼې وُنې لری- بنجر او شاړ ځائې- دشت- خاورے- درګه-
خنګل ځېرے:(خَنګ-ګَل-ځي-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱) یو قسم تریخ بوټے چې دَ خېټې دَ دَرد دَ پاره پکارولے شي- (۲)یو قسم ګیاه چې ځاروی یُ خوری-
خنګل ګړی:(خَنګ-ګَل-ګَه-ړی)اسم- واحد- مؤنث- مغه ځائې چې دَ خنګل ساتونکے پکښې وسیږی- جونګړه-
خنګلی کربوړے:(خَنګ-ګَه-لی-کَر-بو-ړے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- سره خله لرونکې دَ چرمښکی نه لوے ورکوټے شان خزنده چې زیاتره پهٔ خنګلونو کښې موندے شي-
خنګله:(خَنګ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ جنګله- (۲)باړ- ویره-
خنګوټې:(خَنګ-ګو-ټې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- الامو- ټالې وهنه- خنګونه-
خنګورے:(خَنګ-ګو-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ انګورو واښکے ځنډورے- دَ انګورو وښکالے- دَ انګورو وړے-
خنګول:(خَنګ-ګَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)زوړند ځیز ته حرکت ورکول- (۲)اټالول- ټال مټول کول- خبره وړدول- لم لبټ کول- انې بانې کول-
خنګولے:(خَنګ-ګه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خنګول-
خنګون:(خَنګ-ګه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګول-
خنګونکے:(خَنګ-ګه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خنګول-
خنګونګ:(خَنګ-ګه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګول-

خنګونه:(خَنګ-ګهَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خنګول-
خنګوهٔ:(خَنګ-ګهَ-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خنګول-
خنګويه:(خَنګ-ګو-يه)اسم- مؤنث- وګورئ اټامي-
خنګېدل:(خَنګ-ګې-دَل)مصدر لازم- (۱)اټالېدل- يو زوړند څيز ته حرکت ورکېدل- (۲)خبره وړدېدل-
خنګېدلے:(خَنګ-ګې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خنګېدل-
خنګېدن:(خَنګ-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خنګېدل-
خنګېدنګ:(خَنګ-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خنګېدل-
خنګېدنه:(خَنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خنګېدل-
خنګېدونکے:(خَنګ-ګې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خنګېدل-
خنګېدهٔ:(خَنګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خنګېدل-
خنل:(خَ-نَل)مصدر متعدی- سورے کول- پهٔ څهٔ څيز سورے پکښې جوړول-
خنې:(خهٔ-نې)ضمير ربطی (۱)سره- څخه- ورڅخه- ترې نه- ورنه- (۲)بعضې- بعض- څينې-
خنې خنې:(خهٔ-نې-خهٔ-نې)اسم مرکب- بعضې بعضې- يو نيم- خنې- خال خال- کم کوز- يو يو- بعضې نيم- لږ لږ- کله نا کله-
خنې غوزے:(خَنې-غو-زے)اسم- واحد- مذکر- خَن غوزے- چلغوزه- غړنځے- غونځے- جمع خنې غوزی- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ چلغوزے-
خنِکے:(خَنِ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ژنِکے-
خنے:(خهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژنے- جنے- ويرکے- ملک- (۲)خنِکے- ژنِکے- خړے- تخم- زړے- زنے- جمع خنی-
خو:(خو)دَ جمع متکلم صيغه- (۱)مونږ روان يو- درومو- (۲)دَ اجازت اخستو کلمه- لکه مونږ خو يعنی لاړ شو-
خواب:(خُ-وابّ)اسم- واحد- مذکر- (۱)جواب- حال احوال معلومېدنه- (۲)غبرګون- دَ پښتنې ځواب- (۳)رَدول- پهٔ نفی کښې جواب ورکونه- (۴)اری- ايری-
خواب ګر:(خُ-واب-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ خواب لوڅے-
خواب لوڅے:(خُ-واب-لو-څے)اسم صفت- واحد- مذکر- حاضرخواب- خواب ګر- خوابی- حاضرجواب-
خوابی:(خُ-وا-بی)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ خواب لوڅے-
خواګ:(خُواګ)اسم- واحد- مذکر- سبک- جوکه- توغ- لل- (افغانستان)-
خواله:(خُوا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خواؤله- خواونه- شوروا- خومنه- خومنه- (۲)نواله- دَ اُربشو دَ اوړو نه جوړ هغه غټې چې پخوا به يې پهٔ پېلانو خوړل- (۳)دَ شوروا دَ پاره غټه غټه يا تر اندازې زياته پوړی مېده کونه- (۴)خونه- زونه- زلمينه- (افغانستان)-
خوان:(خُوانّ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ځلمے- بالغ شوے- ژنے- ژنِکے- بالغ- زلمے- (۲)سخی- (۳)فوځی- (۴)مېړهٔ- تکړه- مېړنے- بهادر- زړهٔ ور-
خوان توب:(خُوانّ-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوان والے- ځوانی- (۲)بهادری- زړهٔ ورتوب- مېړانه- مړانه- (۲)سخی توب-
خوان خلمے:(خُوانّ-خَل-مے)اسم صفت- واحد- مذکر- بالغ- خبردار- پهٔ ښهٔ بد پوه- وګورئ خوان-
خوانکه:(خُوا-نه-که)اسم- واحد- مؤنث- ګرمکه- ګرمکی- ستو- هغه دانه چې دَ خلميتوب پهٔ وخت کښې پهٔ مخ راخيژی- جمع خوانکې-
خوانکې:(خُوا-نه-کې)اسم تصغير- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ خوانکه-
خوانکے:(خُوا-نَ-کے)اسم تصغير- واحد- مذکر- دَ خوان نه اسم تصغير- خلموټے- خوان- نوجوان- زلمے- زلموټے- خوان- زلمکے- نوے زلمے- خلمے- ژنِکے- ژنے-
خوانګه:(خُوانګ-ګه)اسم- چيچنه- سکونړنه- سکونداره لګونه-
خوانمرد:(خُوانّ-مَرد)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مړنے- نر- بهادر- خوان- مېړنے- زړهٔ ور- غېرتی- (۲)سخی- (۲)پوړی مار- پوړی مار-
خوانمردی:(خُوانّ-مَر-دی)اسم- مؤنث- (۱) زړهٔ ورتوب- نرتوب- جوانمردی- مړانه- بهادری- سخاوت- (۲)پوړی ماری-
خوانمرګی:(خُوانّ-مَر-ګی)اسم مرکب- دَ خوانۍ مرګ- خوانيمرګی- پهٔ خلميتوب کښې مړينه- نيمه خوا کېدنه-
خوانمړد:(خُوانّ- مړد)اسم صفت- واحد- مذکر- خوانمرد- خوان- نر- غېرتی- چې دَ ښې خوانۍ صفت پکښې وی-
خوانول:(خُوا-نَ-وَل)مصدر متعدی- خوان کول- طاقت ورکول- جوانول-
خوانون:(خُوا-نَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خوانول-
خوانونکے:(خُوا-نَ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوانول-
خوانونګ:(خُوا-نَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوانول-
خوانونه:(خُوا-نَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوانول-
خوانوهٔ:(خُوا-نَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوانول-
خوانه خوانی:(خُوا-نه-خُوا-نی)اسم- دَ خوانۍ عمر- دَ خوانۍ ورځې- دَ خوانۍ موده- پهٔ خوانۍ کښې-
خوانی:(خُوا-نی)اسم- مؤنث- (۱)خلميتوب- ژنيتوب- جوانی- (۲) ښهٔ خوانی- ښهٔ خلميتوب- (۳)ښکلا- (۴)قوت او طاقت- شباب- مړانه- مروت-
خوانيمرګ:(خُوا-نی-مرګ)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ خوانۍ کښې مړ- نيمه خوا- خوانيمرګے-
خوانېدل:(خُوا-نې-دَل)مصدر لازم- (۱) خوان کېدل- ژنے کېدل- خلمے کېدل- (۲)طاقت او قدرت موندل-
خوانېدن:(خُوا-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خوانېدل-
خوانېدنګ:(خُوا-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوانېدل-
خوانېدنه:(خُوا-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوانېدل-

خوانېدونکے:(خوا-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوانېدل-

خوانېده:(خوا-نې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ خوانېدل-

خواوله:(خواو-له)اسم- مؤنث- وګورئ خواله-

خواونه:(خواو-نه)اسم- مؤنث- وګورئ خواله-

خوبل:(خو-بل)اسم صفت- وګورئ جوبل-

خوت:(خوت)اسم- مذکر- جوت- جُفت- توکي- جوړي- جوړه-

خوته:(خو-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ جوته-

خوز:(خوځ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ازغن بوټے چې اوښان يې خوري- خوز- سوز- رانے- تنده-

خوخې:(خو-خې)اسم- جمع- مذکر/مؤنث- جوجه ماجوجه- جوجې ما جوجې- خوخې ماخوخې- جوج ماجوج- ياجوج ماجوج- کوټ بنګار-

خوخې ماخوخې:(خو-خې-ما-خو-خې)اسم- جمع- مذکر/مؤنث- وګورئ جوج ماجوج-

خوځ خانه:(خوځ-خا-نه) اسم- واحد- مؤنث- چوپال-

خور:(خه-ور)اسم- مذکر- تکليف- کړاو- کړاو- رنځ- ازار- درد-

خور:(خه-ور)اسم- واحد- مذکر- جور- ظلم- جبر-

خور:(خور)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژر اورېدونکے- زر اورېدونکے- تېره غوږے- تېز اورېدونکے - په غوږو وځک- (۲)نسبتاً هوښيار- پوه- خيرک- (۳)دانا- متوجه-

خورابه:(خو-را-به)اسم- واحد- مؤنث- جرابه- جورابه- جراپه- جوروپه- جلابه- چروپه- جمع خورابې-

خورتوب:(خور-توب)اسم- واحد- مذکر- تېز اورېدنه- خورتيا- ژر اورېدنه- (۲)هوښياري- پوهه- متوجه کېدنه- خوروالے- دانائي- ذيا-

خورتيا:(خور-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خورتوب-

خورظلم:(خور-ظ-لم)اسم(مرکب) زور ظلم- زور زياتے- تاړاک- تېرے-

خورن:(خو-رن)اسم- په خاې شلول-

خوړول:(خو-ړ-ول)مصدر متعدي- (۱)ظلم کول- زياتے او جبر کول- (۲)ازارول- کړول- تکليفول- رنځول- په عذابول- خاورول-

خورول:(خو-ر-ول)مصدر متعدي- (۱)تېز اورول- ژر اورول- (۲)پوهول- دانا کول- هوښارول- (۳)متوجه کول- (۴)مضمول-

خوروله:(خو-ر-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خورول-

خوروړن:(خو-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خورون:(خو-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خورونکے:(خو-ر-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خورول-

خورونکے:(خو-ر-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خورول-

خورونګ:(خو-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خورونګ:(خو-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خوروونه:(خو-ر-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خوروونه:(خو-ر-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خوروه:(خو-ر-وه)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خوروه:(خو-ر-وه)حاصل مصدر- وګورئ خورول-

خوره:(خو-ره)اسم- مؤنث- مضمېدنه- مضمونه- مضم-

خورېدل:(خو-رې-دل)مصدر لازم- درېدل- زورېدل- په عذابېدل- تکليف رسېدل- غمژن کېدل- غمژنېدل-

خورېدل:(خو-رې-دل)مصدر لازم- (۱)مضمېدل- حلېدل- حل کېدل- (۲)لګېدل-

خورېدلے:(خو-رې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خورېدل-

خورېدلے:(خو-رې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خورېدل-

خورېدن:(خو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدن:(خو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدنګ:(خو-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدنګ:(خو-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدنه:(خو-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدنه:(خو-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدونکے:(خو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خورېدل-

خورېدونکے:(خو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خورېدل-

خورېده:(خو-رې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ خورېدل-

خورېده:(خو-رې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ خورېدل-

خوړے:(خو-ړے)اسم- تکليف ورکونه- دردمند کونه-

خوړ:(خوړ)اسم صفت- مخ په ښکته- اترائي- خوبړ- د چړائي ضد- خوبړے- د لوړ ضد-

خوړتوب:(خوړ-توب)اسم- واحد- مذکر- خوړوالے- خوړتيا- مخ په ښکته والے-

خوړتيا:(خوړ-تيا)اسم- مؤنث- وګورئ خوړتوب-

خوړند:(خو-ړند)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)زړېدونکے- کوړے- خوبړند- خړول شوے- زړېدلے-اوبزان- اوبزاند- بانده- نښتے- پاس- اتال-

خوړندتوب:(خو-ړند-توب)اسم- مذکر- خوړندتيا- اوبزاندېدنه- اتالېدنه- خوړندوالے-

خوړندتيا:(خو-ړند-تيا)اسم- مؤنث- خوړندوالے- اوبزاندېدنه- اتالېدنه-

خوړندوالے:(خو-ړند-وا-لے)اسم- مذکر- خوړندتيا- خوړندېدنه- خوړندتوب-

خوړندول:(خو-ړن-ده-ول)مصدر متعدي- اوبزاندول- خړول- للول- کوړې کول- خوبړندول- اتالول- بانده کول-

خوړندون:(خو-ړن-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ خوړندول-

خوړندونکے:(خَو-ړن-ده-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوړندول-
خوړندونګ:(خَو-ړن-ده-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوړندول-
خوړندونه:(خَو-ړن-ده-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوړندول-
خوړندوهٔ:(خَو-ړن-ده-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوړندول-
خوړنده:(خَو-ړن-ده)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- اوېزانده-
خوړندېدل:(خَو-ړن-دې-دَل)مصدر لازم- اوېزاندېدل- ځړېدل- کوړی کېدل- بانډه کېدل- اتالېدل-
خوړندېدن:(خَو-ړن-دې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خوړندېدل-
خوړندېدنګ:(خَو-ړن-دې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوړندېدل-
خوړندېدنه:(خَو-ړن-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوړندېدل-
خوړندېدونکے:(خَو-ړن-دې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوړندېدل-
خوړندېدهٔ(خَو-ړن-دې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوړندېدل-
خوړندے:(خَو-ړن-دے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ کور کښې د ټوکرۍ کړلاڅې پهٔ شان راځوړند څیز چې سامان پکښې اېښودل کیږی- کوړے-
خوړوالے:(خَوړ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خوړتوب-
خوړوبے:(خو-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- خړوبے- جړوبے- زاوهٔ- آبشار-
خوړول:(خَو-ړ-وَل)مصدر متعدی- (۱)مخ ښکته کول- سر کوزول- سر ټيټول- (۲)زمکه ښکته کول- زمکه ژورول- غوچول-
خوړون:(خَو-ړ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خوړول-
خوړونکے:(خَو-ړ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوړول-
خوړونګ:(خَو-ړ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوړول-
خوړونه:(خَو-ړ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوړول-
خوړوهٔ:(خَو-ړ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوړول-
خوړېدل:(خَو-ړې-دَل)مصدر لازم- (۱)مخ ښکته کېدل- سر خوړے کېدل- سر ښکته کېدل- ټيټېدل- کوزېدل- ښکته کېدل-
خوړېدن:(خَو-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خوړېدل-
خوړېدنګ:(خَو-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوړېدل-
خوړېدنه:(خَو-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوړېدل-
خوړېدونکے:(خَو-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوړېدل-
خوړېدهٔ:(خَو-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوړېدل-
خوړے:(خو-ړے)اسم- مخ پهٔ ښکته- خوږې-
خوز:(خوز)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو ځنګلی ازغن بوټے چې اوښان يې ډېر پهٔ مينه خوری- تنده- سوز- خوځ- اغزے- خار- ازغے-
خوزخانه:(خوز-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چرته چې اغزی وی- اغزيانه- خوزيانه- (۲)دَ خوزو کوټې- د خوزانو خونه- دَ خوزونو کوټې- دَ سوزانو خونه- خوز کوټې- خارخانه- هغه کوټې چې دَ ګرمۍ پهٔ موسم کښې خلق خوزان پرې اچوی او دَ ګرمۍ نه خانونه پکښې ژغوری- چوپال- جونګړه- څپر-
خوزکوټې:(خوز-کو-ټې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ خوزخانه- (۲)هغه ځایُ چې ازغی پکښې ډېر وی- اغزيانه- خوزيانه- (۲)خوزژاوله- دَ خوزانو خواله- ترنخبين- خوزکوټې-
خوزکوړی:(خوز-کو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوړی- (۲)خوزژواله- دَ خوزانو زواله- ترنخبين-
خوزکوړے:(خوز-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- خوز کوړی- ترنخبين- خوز خاوله-
خوزن:(خو-زن)اسم صفت- واحد- مذکر- اغزن- ازغن خوز لرونکے- ازغی لرونکے- سوز لرونکے-
خوزوکوړی:(خو-زو-کو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- کوړی- دَ خوزواله- خوزژواله- ترنخبين-
خوزه:(خو-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خوز-
خوزی:(خو-زی)اسم- جمع- مذکر/مؤنث- دَ خوز سره تعلق لرونکے-
خوزی ماخوزی:(خو-زی-ما-خو-زی)اسم- جمع- مذکر/مؤنث- زوزی ما زوزی- جوج ماجوج- جوج ماجوج- خوځی ماخوځی-
خوزيانه:(خوز-يا-نه)اسم- واحد- مؤنث- ازغن ځایُ- ازغی لرونکي سيمه- اغزنه علاقه- اغزيانه- هغه ځایُ چې ډېر ازغی لری- خوز کوټې- خوزخانه-
خوړ:(خوړ)اسم صوت- زوړ- شوربکت- غوغا- غل غوبل- شوروغوغا- غالمغال- (دَ زوړ دړه املا)-
خوړده:(خوړ-ده)اسم فاعل- واحد- مذکر- خوړ کونکے-
خوړه:(خَو-ړه)اسم صوت- خوړ- زوړ- زووړ- شورشغرب- دَ ګڼو آوازونو خوړا- (زړه املا)-
خوښ:(خوښ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ختکېدنه- خوټکېدنه- جوش- خوټ- (۲)تاؤ- غصه- کينه-
خوښا:(خو-ښا)اسم- واحد- مؤنث- د انګورو شيره- جوشاب- دوښا- دَ توتانو شيره- دَ څهٔ خوړ څيز شيره-
خوښول:(خو-ښ-وَل)مصدر متعدی- (۱)جوش ورکول- خوښ ورکول- ختکول- (۲)شيره اېستل- دوښاکول- دوښا اېستل-
خوښولے:(خو-ښ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خوښول-
خوښون:(خو-ښ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خوښول-
خوښونکے:(خو-ښ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوښول-
خوښونګ:(خو-ښ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوښول-
خوښونه:(خو-ښ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوښول-
خوښوهٔ:(خو-ښ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوښول-
خوښه:(خو-ښه)اسم- واحد- مؤنث- جوشه- هغه څيز چې پهٔ دېګ کښې يا کټوۍ کښې وختکولے شی-

"ئ" (څی-رل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لی)، "ې"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

خوښېدل:(خو-ښې-دل)مصدرِ لازم- يشېدل- جوش خوړل- جوشېدل- اېشېدل- خټکېدل-

خوښېدلے:(خو-ښې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خوښېدل-

خوښېدن:(خو-ښې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خوښېدل-

خوښېدنګ:(خو-ښې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوښېدل-

خوښېدنه:(خو-ښې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- (۱)وګورئ خوښېدل- (۲)تيزي- غلبه- غلبله-

خوښېدونکے:(خو-ښې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوښېدل-

خوښېدهٔ:(خو-ښې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوښېدل-

خوغاله:(خو-غا-له)اسم- واحد- مؤنث- پېړه-

خوکړه:(خوک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- زېږېدنه- خوونه- زوکېدنه- تولد- زوکړه-

څوکړه:(څوک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- څوکه- څوکنۍ- تېغے- تېرهٔ سر- څوکړه- سر- دَ ونې، غر يا هر هغه څيز چې اخرى سر يُ پهٔ پورته ختلے وى او هم پهٔ هغه نقطه ختميږى-

خوکل:(خو-کل)اسم- مذکر- خخفولے- خخبوکے- جزغاله-

څوکول:(څو-کهٔ-ول)مصدرِ متعدى- پېدا کول- راؤړل- زېږول-

څوکون:(څو-کهٔ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ څوکول-

څوکونکے:(څو-کهٔ-وون-کے)اسمِ فاعل واحد- مذکر- وګورئ څوکول-

څوکونګ:(څو-کهٔ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ څوکول-

څوکونه:(څو-کهٔ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ څوکول-

څوکوهٔ:(څو-کهٔ-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ څوکول-

څوکې داره:(څو-کې-دا-ره)اسمِ صفت- واحد- مذکر- تېره- نوکداره- څوکې داره- جمع څوکې دارې-

څوکېدل:(څو-کې-دل)مصدرِ لازم- زېږېدل- پېدا کېدل-

څوکېدن:(څو-کې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ څوکېدل-

څوکېدنګ:(څو-کې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ څوکېدل-

څوکېدنه:(څو-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ څوکېدل-

څوکېدونکے:(څو-کې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ څوکېدل-

څوکېدهٔ:(څو-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ څوکېدل-

خوکے:(خو-کے)اسم- واحد- مذکر- سخته لار- خوېږناکه لار- ستغ- خوړے-

خوګ:(خوګ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم غرڅنے بدبويه بوټے دے چې زنانه يُ دَ وچولو او ورولو نه پس دَ ماشومانو پهٔ ترخونو او مغانو کښې اچوى-

خوګل:(خو-ګل)اسم- وګورئ پوسه-

خول:(خول)اسم- واحد- مذکر- تېز باد-يخه او تېزه سيلى- سخته يخنى او سيلۍ- سيلى او باران- طوفان- زول-

خول:(خول)اسم- واحد- مذکر- زوبل- زول- زوال- يو قسم بوټے چې زيړ ګل کوى او پهٔ بعضو بيمارو کښې دَ دارو پهٔ توګه استعمالولے شى- (افغانستان)-

خول:(خول)اسم- لمسون- ټوم- ټونګ-

خولانه:(خو-لا-نه)اسم- واحد- مؤنث- خولنه- دَ پښو زنځير- بېړى-

خولن:(خو-لن)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه زخم چې دَ پوخوالى لهٔ کبله پکښې نو راغلے وى-

خولنکه:(خو-لنګ-که)اسم- واحد- مؤنث- مذکر خول- جوله- خورجين- پنډېر- پنډېره- بوڅخکۍ- دَ ټوکى جوړه هغه بوجکۍ شان چې دَ کور خنې مات ګډ سامان پکښې خوندى کولے شى-

خولنه:(خو-له-نه)اسم- واحد- مؤنث- خولانه- بېړى- دَ پښو زنځير-

خوله:(خو-له)اسم- مؤنث- ورى- غيزى- جوله-

خوله:(خو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زوړ قميص چې لاندې ورته استر لګېدلے وى- (۲)الويه او وړده جوله چې دَ بيزو دَ وېښتو نه جوړه شوې وى او پهٔ اوښانو باندې باروله کيږى-

خوله:(خو-له)مهمل- وګورئ خله خوله-

خولى:(خو-لى)اسم- واحد- مؤنث- بنګړى- بامو-

خولۍ:(خو-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)المن- جولۍ- (۲)کلچ- پيڅه- جوال غندې څيز دے چې دواړه سرونه او يو طرف يُ ګنډلے وى او يوه خوا يُ آزاده وى- خاوره او سره پکښې چلولے شى-

خومبق:(خوم-بق)اسم- واحد- مذکر- خونبق- غنچک- دَ يو بوټى تنکۍ غندل او دَ سرپانې-

خومبک:(خوم-بک)اسم- واحد- مذکر- کچه- کوچه- زومبک- خونډے- غومپک-

خومبکه:(خوم-به-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ څونک-

خومبکے:(خوم-به-کے)اسم- واحد- مذکر- وټے- خومبکه- دَ زنانو دَ غوړونو يو قسم کالے-

خومبول:(خوم-ب-ول)مصدرِ متعدى (۱)خوځول- پهٔ ورو ورو حرکت کښې راوستل- پهٔ قلار قلار حرکت ورکول- سوکه حرکت ورکول- (۲)سستول- ورو کول-

خومبولے:(خوم-ب-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- (۱)حرکت کښې راوستے- خوزولے- (۲)سست کړے- وروکړے-

خومبون:(خوم-ب-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خومبول-

خومبونکے:(خوم-ب-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خومبول-

خومبونګ:(خوم-ب-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خومبول-

خومبونه:(خوم-ب-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خومبول-

خومبوهٔ:(خوم-ب-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ خومبول-

خومبېدل:(خوم-بې-دل)مصدرِ لازم- (۱)پهٔ ګڼ شمېر کښې ټولېدل- غزېدل يا خوځېدل- حرکت کول- (۲)سستېدل- ورو کېدل-

خومبېدلے:(خوم-بې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خومبېدل-

خومبېدن:(خوم-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خومبېدل-
خومبېدنګ:(خوم-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خومبېدل-
خومبېدنه:(خوم-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خومبېدل-
خومبېدونکے:(خوم-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خومبېدل-
خومبېدهٔ:(خوم-بې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ خومبېدل-
خومنه:(خوم-نه)اسم- مؤنث- خواله- ښوروا- زېمنه- شوروا- شوربه- خوومنه- خومه-
خون:(خُ-ون)اسم- واحد- مذکر- پجه- پچه- پچن- بټۍ- د کلال پجه- د کُلال بټۍ- پژه-
خونبق:(خوم-بق)اسم- واحد- مذکر- خونړے- پهٔ سر وړه غندي د وېښتو ګوپه-
خونړکے:(خون-ړهٔ-کے)اسم تصغير- واحد- مذکر- وړوکے خومبق-
خونړی خونړی:(خون-ړی-خون-ړی)اسم مرکب- مذکر- چې ړبر خونړی پکښې وی-
خونړے:(خون-ړے)اسم- واحد- مذکر- پشم يا د ورېښمو نه جوړ شوے ګل- د پګړۍ څوکه- جوړه کړے شوی غټه- طره- پوپکه- کلغی- خومبک- کوچه- ګچه- پوپک- ګل- تاج- جنړے- جينړی- چرخول- چارخولک- چارغول- چارغومک- کرکره- پرپره- د چرګ چوټۍ- د چرګ د سر خونړے-
خونګه:(خون-ګه)اسم- مؤنث- عادت- فطرت- شان- پېدائښت- پېداوښت-
خونه:(خو-نه)اسم- وګورئ اوی-
خووب کر:(خُ-ووب-کر)اسم صفت- واحد- مذکر- باني کر- خواب کر- حيلې باني يا انې باني جوړونکے-
خوول:(خو-ول)مصدر متعدی- زېږول- راوړل- پېدا کول-
خوښل:(خو-ښل)مصدر- شخوند وهل- ژوښل-
خوئ:(خوئ)اسم- واحد- مذکر- بچے- نارينه اولاد- زمنګے- زوئ-
خوږ:(خوږ)اسم- واحد- مذکر- د ستغ ضد- کښته- د تل يا فرش خوا ته تلل- د غرهٔ نه د راکوزېدو مخه- خوړ- خوړے- د نېغ ضد- مخ ښکته- د تل پهٔ لور- د غرهٔ نه د راښکته کېدو مخه-
خوېږند:(خوې-ږند)اسم صفت- واحد- مذکر- خوړند-
خوېش:(خوېش)اسم- مؤنث- نچوړ-
خوېښل:(خوې-ښل)مصدر متعدی- خبېښل- څوپل- چوپل-
خه:(خه)فعل امر- روان شه- لاړ شه-
خيخېرل:(خی-خې-رل)مصدر متعدی- (۱)وهل- ټکول- کوټل- سپورې ستغې وتېل- (۲)خوړل- وهل- لکه د پوئ وهل او موږک وهل-
خيخېرلے:(خی-خې-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خيخېرل-
خيخېرن:(خی-خې-رن)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرل-
خيخېرنګ:(خی-خې-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرل-
خيخېرنه:(خی-خې-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرل-
خيخېرونکے:(خی-خې-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خيخېرل-
خيخېرهٔ:(خی-خې-رهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرل-
خيخېرېدل:(خی-خې-رې-دل)مصدر لازم- د چا د لاسه وهل ټکول خوړل-
خيخېرېدن:(خی-خې-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرېدل-
خيخېرېدنګ:(خی-خې-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرېدل-
خيخېرېدنه:(خی-خې-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرېدل-
خيخېرېدونکے:(خی-خې-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خيخېرېدل-
خيخېرېدهٔ:(خی-خې-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خيخېرېدل-
خير:(خير)صفت- مذکر- (۱)اتيات- احتياط- پهٔ غور کتنه- (۲)کتلے- ليدلے کتلے-
خير:(خير)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تېز نظره- باريک بين- زيرک- خيرک- دانا- هوښيار- متوجه- (۲)سوچه- خالص- (۲- اسم)چيغندک- ږغ- غږ- آواز- د ساز نرے آواز- (کول/کېدل مصدرونه)-
خير:(خير)اسم- واحد- مذکر- (۱)پټ- پوټکے- پوستکے- څرمن- پوټ- (۲)د مېزری پټ د مېزری پانه- (۳)هغه تار چې پهٔ غاړه کښې پروت وی- د سرينډې تار- (۴)غاړکی- شيندی- (وتېل مصدر)-
خيرخير:(خير-خير)اسم صفت- مرکب- پهٔ يو مخ- پهٔ غور- (کتل/وتېل مصدرونه)-
خيرک:(خی-رک)اسم صفت- واحد- مذکر- تېز نظره- هوښيار- زيرک- پوهه- تېز نظرے- تېز بين- دقيق-
خيرکتوب:(خی-رک-توب)اسم- مذکر- زيرکتوب- خيرک والے- هوښياری- خيرکتيا- پوهه- تېز نظری- هوښيارتيا- دانائی- زيارسی-
خيرکتيا:(خی-رک-تيا)اسم- مؤنث- وګورئ خيرکتوب-
خيرکوالے:(خی-رک-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ خيرکتوب-
خيرکی:(خی-ر-کی)اسم- مؤنث- تېز نظری- هوښياری- پوهه- باريک بينی-
خيرکے:(خی-ر-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- دوه پوستنه- دوغله- دوه غبرګه- دوه برغه-
خيرمن:(خير-من)اسم صفت- واحد- مذکر- هوښيار- زيرک- خيرک- باريک بين- پوه-
خيرنه:(خی-رهٔ-نه)حاصل مصدر- (۱)زرنی کول- خيرتيا- خيرتوب- پهٔ خير خير کاتهٔ- (۲)پام اړول- خبراخستل-
خېرول:(خی-ر-ول)مصدر متعدی- (۱) پهٔ خير خير کتل- جائزه اخستل- (۲)تصديق کول- پهٔ زرکانی اچول (۳)څېړل- سنجول- (۴) تنقيد کول- پلټنه کول- (۵)لېدل- کتل- لټول- (۶)متوجه کول-
خېرون:(خی-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ خېرول-

ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱ ، ئ (پيا-لی) ، ې (مې-ره-ول) ، ی (خی-رل)

ښېرونکې:(خې-ر-ؤون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ښېرول-

ښېرونګ:(خې-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرول-

ښېرونه:(خې-ر-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښېرول-

ښېروۀ:(خې-ر-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرول-

ښيره:(خی-ره)اسم- مؤنث- (۱)جيره- ټاکلې اندازه- وظيفه- هغه مقرره اندازه چې يو کور ته جومات ته ورکول کيږی- (۲)يوه مشهوره ګياه ده چې سپين او واړۀ ګلونه لری تخم يې ښۀ بوئ لری او ځنی خوړو ته د ښې ذائقې او ښۀ بوئ د پاره وراچول کيږی- زيات تره وريژو کښې اچول کيږی- زيره- زنکې-

ښيره:(خی-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ځان- بشره- څېره- مشاده- شکل- (۲- صفت)څرګند- ښکاره-

ښيرېدل:(خی-رې-دل)مصدر لازم- متوجه کېدل- دقت کول-

ښيرېدن:(خی-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښيرېدل-

ښيرېدنګ:(خی-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښيرېدل-

ښيرېدنه:(خی-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښيرېدل-

ښيرېدونکې:(خی-رې-دون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ښيرېدل-

ښيرېدۀ:(خی-رې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښيرېدل-

ښيرګې:(خير-ګې)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښخکې- څوڅکې- ششکې- سرکې- ژڅکې- سڅکې- (۲)يو قسم بوټې دې چې پۀ پانړو کښې يې ازغی وی-

ښيګ:(خيګ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ديژ- ببر- ستغ- شډل- (۲)غېرتی- (۳)سپېځلې- سوچه- پاک- (۴)وګورئ جمبل- (۵)وګورئ پېړوده-

ښيګ توب:(خيګ-توب)اسم- مذکر- (۱)زيرتوب- ببروالې- خيرتيا- سخت مزاجی- (۲)غېرت- (۳)سوچه والې- پاکوالې- سپېځلتيا- سپېڅلتيا-

ښيګ تيا:(خيګ-تيا)اسم- مؤنث- وګورئ ښيرتوب-

ښيګر:(خی-ګر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ينه- ينه- جګر- (۲)سينه- (۳)همت- زغم- حوصله- (۴) زړۀ ور توب- شجاعت- دلاوری- (۵)زوی- (۶)خوږ- نژدې-

ښيګرخون:(خی-ګر-خون)اسم- مرکب- تکليف- خواری-

ښيګرور:(خی-ګر-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د لوئ زړۀ ښتن- د لوئ سينې خاوند- (۲)مضبوط- بهادر- زړۀ ور- (۳)شوخ-

ښيګ والې:(خيګ-وا-لې)اسم- مذکر- ستغوالې- ښيرتوب-

ښيکول:(خی-کہ-ول)مصدر متعدی- ببرول- زيږول- ديژول- غصه کول- سوختول- پۀ ننګ او غېرت راوستل-

ښيکولې:(خی-کہ-وۀ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ښيکول-

ښيکون:(خی-کہ-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښيکول-

ښيکونګ:(خی-کہ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښيکول-

ښيکونه:(خی-کہ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښيکول-

ښيکونکې:(خی-کہ-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ښيکول-

ښيکوۀ:(خی-کہ-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښيکول-

ښيکه بوکه:(خی-کہ-بو-کہ)اسم مرکب- کټه وټه- ذخيره- غوټه- جمع- ګټه-

ښيکېدل:(خی-کې-دل)مصدر لازم- زيږېدل- ببرېدل- غصه کېدل- سوختېدل- ديژېدل-

ښيکېدن:(خی-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښيکېدل-

ښيکېدنګ:(خی-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښيکېدل-

ښيکېدنه:(خی-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښيکېدل-

ښيکېدونکې:(خی-کې-دون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ښيکېدل-

ښيکېدۀ:(خی-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښيکېدل-

ښينار:(خی-نار)اسم- واحد- مذکر- زنار- د سپينسو هغه مزې چې هندوان يې پۀ مذهبی ډول غاړې ته اچوی-

ښينګر:(خين-ګر)اسم- واحد- مذکر- ګڼ- ګور- زينګر-

ښينور:(خی-نور)اسم- څنور- غبرګولی-

ښينه:(خی-نه)اسم- واحد- مؤنث- زينه- پوړی- پايه- پارځنګ-

ښينې:(خی-نې)متعلق فعل- (۱)بعضې- ځنې- (۲)تربېنه- ورڅخه- ترې-

ښېټ:(خېټ)اسم صفت- واحد- مذکر- جوټ- ځوان- سنډا-

ښېټه:(خې-ټه)اسم صفت- واحد- مؤنث- جوټه- ځوانه مېښه چې لنګه شوې لا نۀ وی-

ښېرمه:(خېر-مه)اسم- مؤنث- زېرمه- توښه- ذخيره- توشه- پس انداز-

ښېرمه وال:(خېر-مه-وال)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې د اخلی پخلی کار کوی-

ښېرول:(خې-ره-ول)مصدر متعدی- پسخول- زهيرول-

ښېرولې:(خې-ره-وۀ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ښېرول-

ښېرون:(خې-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښېرول-

ښېرونکې:(خې-ره-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ښېرول-

ښېرونګ:(خې-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرول-

ښېرونه:(خې-ره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښېرول-

ښېروۀ:(خې-ره-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرول-

ښېرې:(خې-رې)صفت- مذکر- رښتيا- څرګند- سوچه خبره-

ښېزمه:(ښېز-مه)اسم- واحد- مؤنث- جژمه- د ښځو غاړې- د سترګو هغه برخه چې بانړۀ پرې ولاړ وی- جبړمه- جړومه- جزمه-

ښېږمه:(ښېږ-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ښېزمه-

ښېږېدل:(خې-ږې-دل)مصدر لازم- پيدا کېدل-

ښېږېدلې:(خې-ږې-دۀ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ښېږېدل-

ښېږېدن:(خې-ږې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښېږېدل-

ښېږېدنګ:(خې-ږې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښېږېدل-

ښېږېدنه:(خې-ږې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښېږېدل-

ښېږېدونکې:(خې-ږې-دون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ښېږېدل-

زبر "(خ-بۀ-ره)، زورکې"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-ښې-دۀ)

خېږېدهٔ:(خې-ږې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ خېږېدل-

خېسل:(خې-سل)مصدر متعدی- جسل- جوسل- بدرد ونېل- ملامته کول- ازارول- کړول- تکلیف ورکول- زورل-

خېل:(خېل)اسم- واحد- مذکر- (۱)ضد- ناړامی- بغض- اړی- سرټمبکی- سرتمبکی- جېل- ناپوهی- کم عقلی- تېنګار- (۲)زنځیر- (۲)رسی- ام- فارسی جهل)-

خېلانځه:(خې-لان-ځه)اسم- د خمن ځایٔ-

خېلانځه:(خې-لان-ځه)اسم- واحد- مؤنث- مغه ځناور (غوا، مېښه)چې د کمزوری یا بیماری نه صحت مند شی-

خېلانځه:(خې-لان-ځه)اسم- واحد- مؤنث- پېروان- پرېوان- پرېمون- خلیانځه-

خېله:(خې-له)اسم- واحد- مؤنث- خېلی- جرړه- جړه- مونړ کونړ-

خېلی:(خې-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- ړیمار- ضدی- جاهل- ناپوهه- کم عقل- سرټمبه- جېلی-

خېلی:(خې-لي)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)جرړه- ولی- (۲)انځیران- انځری- یو قسم بیماری ده چې د څرمنې دننه غټ غټ غنډان راپېدا شی- (۲)اخیری- کجیران- کجران-

چ:(چې)حرف- د پښتو د اب د پټۍ نهم حرف- تلفظ ئې چې دے-

چا:(چا)حرف استفهام- څوک- کوم یو- کوم-

چاب:(چاب)اسم- واحد- مذکر- دیدوان- زخه- پلیته- چاپ-

چاباره:(چا-با-ره)اسم صفت- واحد-مؤنث- (۱)چالاکه ښځه- زړهٔ وره ښځه- (۲)پوهه ښځه- ښهٔ مېرمن- تکړه ښځه- جمع چاباري-

چاېړی فروش:(چاب-ړی-ف-روش)اسم صفت- واحد- مذکر- رېړی بان- رېړي والا- چاېړے لګونکے- رېړه یا ګاډی کښې څیزونه خرڅونکے-

چاېړی فروشی:(چاب-ړی-ف-رو-شی)اسم- واحد- مؤنث- د چاېړی فروش کار-

چاېړی:(چاب-ړی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ چاېړے- (۲)ورکوټې ټوکری- ورکوټې شکری- ڇابړی-

چاېړے:(چاب-ړے) اسم- واحد- مذکر- د تلې یوه حصه- تلې پټ - تله- جمع چاېړی-

چابک:(چا-بک)اسم- واحد- مذکر- کرورہ- تازینه- تراټ- متروکه- جمع چابکونه-

چابک:(چا-بک)اسم صفت- تېز- ګړندے- چست- تند- متے- چالاک-

چابک ټکے:(چا-بک-ټه- کے)اسم صفت- واحد- مذکر- تېز تلونکے- ګړندے تلونکے- جمع چابک ټکی-

چابکتوب:(چا-بک-توب)اسم- مذکر- چابکتیا- چابکی- تېزی- چابک والے- جلتی- تندی- چستی- ګړندے توب- چالاک والے-

چابکتیا:(چا-بک-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ چابکتوب-

چابک چابک:(چا-بک-چا-بک)اسم مرکب- ګړندے ګړندے- تېز تېز-

چابک دست:(چا-بک-دست)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې پهٔ لاسو تکړه وی- تک لاسے- جمع چابک دستی-

چابک سوار:(چا-بک-س-وار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تېز- (۲)سور- پسور- جمع چابک سوارهٔ-

چابک سواری:(چا-بک-س-وا-ری)اسم- مؤنث- (۱)تېزی- تُندی- (۲)سورلی-

چابکو:(چا-بهٔ-کو)اسم صفت- واحد- مذکر- چُست وچالاک-

چابکوالے:(چا-بک-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ چابکتوب-

چابکول:(چا-بهٔ-که-ول)مصدر متعدی- ګړندے کول- تېزول- متے کول- جلتول- تندول- وچتول- چالاکه کول-

چابکون:(چا-بهٔ-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ چابکول-

چابکونکے:(چا-بهٔ-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چابکول-

چابکونګ:(چا-بهٔ-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چابکول-

چابکونه:(چا-بهٔ-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چابکول-

چابکوهٔ:(چا-بهٔ-که-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چابکول-

چابکی:(چا-بهٔ-کي)اسم- مؤنث- وګورئ چابکتوب-

چابکېدل:(چا-بهٔ-کې-دل)مصدر لازم- ګړندے کېدل- تېزېدل-

چابکېدن:(چا-بهٔ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چابکېدل-

چابکېدنګ:(چا-بهٔ-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چابکېدل-

چابکېدنه:(چا-بهٔ-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چابکېدل-

چابکېدونکے:(چا-بهٔ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چابکېدل-

چابکېدهٔ:(چا-بهٔ-کې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چابکېدل-

چابکی:(چا-بهٔ-کی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم چینجے چې رنګ ئې سور وی او د پاسه پرې وېښتهٔ وی- مادکیڼا- ګړندی-

چابی:(چا-بی)اسم- واحد- مؤنث- کُنجی- نوسے- پلے- کلی- کیلی- پېچ- هغه آله چې جرنده (تاله) پرې خلاصولے شی- هغه آله چې د موټرو لارو او داسې نور قسمه مشینونه پرې پرانستے شی- پهٔ ګړی کښې هغه ورکوټے پېچ چې مشین ته پرې حرکت ورکولے شی- هغه آله چې ګړیال ته پرې حرکت ورکولے شی-

چاپ:(چاپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مهر- ټاپه- (۲)نښه- نښانه- داغ- خاپ- علامت- (۲)د چاپ کارخانه- د چاپ صنعت- (۴)د وسلې دُوکان- (۵)تخم- (۶)خوشامنده- (۷-صفت)چاپ شوے-

چاپانه:(چا-پا-نه)اسم- واحد- مؤنث- شوکه- غلا- چپاؤ- چغه-

چاپت:(چا-پت)اسم- مذکر- (۱)قرض سودا- پهٔ پور سودا- نسیه سودا- لاګ وپار- قرض دار- ورکړه راکړه- (۲)یاداښت- یاداشت- چوب خط- چوخت- پهٔ قرض ټوکے یا رخت اخستنه- وګورئ اچاپت-(م- هندی)-

چاپ خانه:(چاپ-خا-نه)اسم- واحد-مؤنث- (۱)مطبع- د چاپ کولو ځائې- هغه ځائې چې د کتابونو یا داسې نورو موادو د چاپ کولو کار پکښې د مشینونو پهٔ ذریعه کیږی- جمع چاپ خانې-

چاپر:(چا-پر)اسم-غښت- قبله نما- حد- ځائې- (افغانستان)-

چاپړ:(چا-پړ)اسم- واحد- مذکر- د تلې پله- چاپړے-

چاپړاغ:(چاپ-ړاغ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)واز- بېرته- خلاص- ارت- پلن- پراخ- (۲)د زنانهٔ اندام نهانی-

چاپړاخه:(چاپ-ړا-خه)اسم- واحد- مؤنث- خاپېړه- څپېړه- تتوړه چاپېړه- څپړ- څپلاخه- چپلاخه- چاپلاخه- جمع چاپړاخې-

چاپړټاپه:(چا-پړ- ټا-په)اسم مرکب- هغه پلنه اُسپنه چې بله پلنه اُسپنه پرې اوارولے شی-

چاپړخه:(چاپ-ړه-خه)اسم- واحد- مؤنث- چپاتی- کاغذی ډودی- پنجابی ډوډی- نری او سپکه ډوډی-

چاپکه:(چا-پهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- څپیاکه- سوپه- تپی- تاپی- څپکه- جمع چاپکې-

چاپلاخه:(چاپ-لا-خه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چاپړاخه-

چاپلوس:(چاپ-لوس)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خوشامندګر- خوشامد ګر- خوشامدی- غوړه مال- بوټ پالک- تملق- چاکلیټی- چپړوس-

دَ غوړو او پستو خبرو ويونکے- غوړاوو-

چاپلوسي:(چاپ-لو-سي)اسم- مؤنث- خوشامندگري- غوړه مالي- بوټ پاکي- خوشامدگري- چېړوسي- بې ځايه صفتونه- خوشامندي- پهٔ ژبه څټنه-

چاپول:(چا-پهٔ-وَل)مصدر متعدي- (۱) طبع کول- خپروَل- چاپ کول- (۲)ټاپه کول- مهر کول- (۳)نښه کول- نښاني کول- نشانه کول-

چاپون:(چا-پهٔ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چاپول-

چاپونکے:(چا-پهٔ-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چاپونکي- مؤنث چاپونکې- وګورئ چاپول-

چاپونګ:(چا-پهٔ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاپول-

چاپونه:(چا-پو-نه)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ زخمونو جوړېدو نه پس پاتې شوي داغونه- داغونه- (۲)دَ چاپ جمع-

چاپونه:(چا-پهٔ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاپول-

چاپوهٔ:(چا-پهٔ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چاپول-

چاپه:(چا-پهٔ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناڅاپي حمله- چوپه- (۲)چاپ- خاپ- داغ- نښه- نقش- ټاپه- (۳)غټ مهر- (۴)څپک- دَ څلورو ګتو اندازه- دَ څلورګتو مومره ځاۍ- دَ دوو انچو برابر- (۵)دَ ازغيو دلي- دَ غنو پولي- چپه- (۶)کلان- جمع چاپې-

چاپه خانه:(چا-پهٔ-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چاپ خانه-

چاپي:(چا-پي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)منډنه- کښېنمېنه- پهٔ وجود زور کونه- بلوده- (۲)وهنه- (کول کېدل مصدرونه)-

چاپي:(چا-پي)صفت- (۱)ټاپه شوے- نښه لرونکے- چاپ شوے- (۲)نښاني- نښه-

چاپېدار:(چا-پې-دار)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- ګل دار- چاپونه لرونکے- نښې لرونکے-

چاپېدل:(چا-پې-دل)مصدر لازم- چاپ کېدل- طبع کېدل- خپرېدل- پهٔ مشين چاپ کېدل-

چاپېدن:(چا-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چاپېدل-

چاپېدنګ:(چا-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاپېدل-

چاپېدنه:(چا-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاپېدل-

چاپېدونکے:(چا-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چاپېدل-

چاپېدهٔ:(چا-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چاپېدل-

چاپېر:(چا-پېر)صفت- (۱)څرخومه- سرکومه- تاوَراتاو- ګرداګرد- ګردي ګوښه- راتاو- چارپېر- چاپېره- ګردي ګوښي- شاوَخوا- خواوَشا- څلورخواوې- چارپېره- چارچاپېر- چارچاپېره- (۲)مصروَت- لګيا- بوخت- اخته- وَوختهٔ- مشغول-

چاپېراز:(چا-پې-راز)اسم- چاپېراس- خواوَشا

چاپېراس:(چا-پې-راس)اسم- وګورئ چاپېراز-

چاپېرچل:(چا-پېر-چل)اسم- (۱)ګردش- ګردښت- ګرځېدنه- دَ زمکې دَ ګرې څرخېدنه- (۲)پرله پسې راتاوېدنه او راګرځېدنه- (۳)طواف- چکر- (۴)ماحول- چاپېريال- ګېرچاپېره چاپېره- تېرچاپېره- ګرداګرد- خواوَشا-

چاپېرسيند:(چا-پېر-سيند)اسم صفت- مذکر- سمندر- بحر اوقيانوس- کاري درياب- کاړي درياب- بې پايانه سمندر-

چاپېروَل:(چا-پې-ره-وَل)مصدر متعدي- (۱)راتاووَل- محاصره کول- ګېروَل- •چاپېرکول- ګېرد را څرخول- پهٔ غېږ کښې نيول-

چاپېروَن:(چا-پې-ره-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چاپېروَل-

چاپېرونکے:(چا-پې-ره-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چاپېروَل-

چاپېرونګ:(چا-پې-ره-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاپېروَل-

چاپېرونه:(چا-پې-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاپېروَل-

چاپېروهٔ:(چا-پې-ره-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چاپېروَل-

چاپېره:(چا-پې-ره)صفت- مذکر- مؤنث- وګورئ چاپېر-

چاپېريال:(چا-پېر-يال)اسم- خواوَ شا- شاوَخوا- ماحول- څلور طرفه- چاپېرچل- تېرچاپېره- ګېرچاپېره- محيط-

چاپېرېدل:(چا-پې-رې-دل)مصدر لازم- (۱)راتاوېدل- تاوېدل- ګېره اچول- احاطه کول- (۲)اخته کېدل- لګيا کېدل- بوختېدل- مشغولېدل-

چاپېرېدن:(چا-پې-رې-دن) حاصل مصدر- وګورئ چاپېرېدل-

چاپېرېدنګ:(چا-پې-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاپېرېدل-

چاپېرېدنه:(چا-پې-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاپېرېدل-

چاپېرېدونکے:(چا-پې-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چاپېرېدل-

چاپېرېدهٔ:(چا-پې-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چاپېرېدل-

چاپېرے:(چا-پې-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هرکاره- هېر کار کونکے- (۲)بوخت- اخته- لګيا- مشغول-

چاپېړه:(چا-پې-ړه)اسم- واحد- مؤنث- جمع چاپېړې- وګورئ چاپړاخه-

چاټ:(چاټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تروه مربه- دَ بيلو بيلو مېوو نه جوړه شوې ترسکونه او ترشه مغلوبه-(۲)غټ منګے- غټ لوښے- (۳)غټه کېده- (۴)دَ دواړو ورونو منځ- دَ دواړو پتونونو منځ- (۵)عادت- مزه-

چاټا:(چا-ټا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پړسو- غټ ګېډے- خېټور- ګېډور- خېټو- غټ خېټے- ډېرخوړونکے- (۲)مټ- چاټي- جمع چاټاګان-

چاټ خېټے:(چاټ-خې-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع چاټ خېټي- وګورئ چاټي خېټے-

چاټ کوټے:(چاټ-کو-ټے)اسم تصغير- واحد- وړوکې چاټې- جمع چاټ کوټي-

چاټکے:(چاټ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ خټو لوښے- جمع چاټکي-

ئ (څې-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

چاتړو:(چا-تړو)اسم صفت- واحد- مذکر- خوش طبع- چټ- مست- څوک چې خپل وخت په خوښۍ تېروي-

چاتوتۍ:(چا-تو-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د خاورو کونډۍ- لوئ کنډول- (۲)لوئ ښانک-

چاتوړے:(چا-تو-ړے)اسم- واحد- مذکر- د پیو ایښودو لوښے- جمع چاتوړی-

چاټۍ:(چا-ټۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)هغه غټ خاورین لوښے چې اُبهٔ پکښې د څښلو دپاره ساتلے شی- د اوړو دانو او ګړې د ایښودو خاورین لوښے- (۲)د شملوشاربلو لوښے- مټ- خم- ماټۍ- مټۍ- جمع چاټیانې هم-

چاټۍ خېټے:(چا-ټۍ-خې-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع چاټۍ خېټی- غټ خېټے- کېډ بند- ډېر خور- کېډور- خېټور- خېټو- هغه کس چې خېټه ئې راوتې او پړسېدلې وی- هغه څوک چې ډېره ډوډۍ خوری-

چاجوش:(چا-جوش)اسم- واحد-مذکر- هغه لوښے چې چائې پکښې پخولے شی- د چائیو د یشولو لوښے- هغه لوښے چې اُبهٔ پکښې یشولے شی- کیتلے- چائېجوش- چے جوش- چائېبر- چائنجوشه- چاجوشه- جمع چاجوشونه-

چاچا:(چا-چا)اسم- واحد- مذکر- (۱)تره- کاکا- اکا- د پلار ورور- (۲)مشر سړی ته د ادب نوم- جمع چاچاګان-

چاچوغاړه:(چا-چو-غا-ړه)اسم- مؤنث- هغه حالت چې ماشوم په غاړه او په اوږه باندې ناست وی- جمع چاچاغاړی-

چاچی:(چا-چی)اسم- واحد- مؤنث- د تره ښځه- چاچی- تندار- وندیار- ورندار- تندیار- جمع چاچیانې- چاچی ګانې-

چاچی:(چا-چی)اسم- مؤنث- جمع چاچی- (۱)وګورئ چاچی- (۲)د وړو ماشومانو لاس- د لاس تصغیر- (۳)د لاس چپړ، پنجه او خپړ-

چاخ:(چاخ)اسم صفت- واحد- مذکر- مؤنث چاخه- (۱)چاک وچوبند- تکړه- چالاک- چاق- تیار- شلند- مضبوط- غوښین- جغمټ- (۲)تېز- تُند- بیړندے- ګړندے- جلت- متے- وندے- اُوچت- ارمتے- چُست- (م- چاق- فارسی)-

چاخ تک:(چاخ-تک)اسم مرکب- مذکر- تېز تېز تلنه- (افغانستان)-

چاخ چاخ:(چاخ-چاخ)اسم مرکب- تېز تېز- جلت جلت- ګړندے ګړندے- په خغل- په منډه- په دو- توند توند- وچت وچت-

چاخول:(چا-خه-وَل)مصدر متعدی- (۱) چاقول- تېزول- ګړندے کول- چُستول- متے کول- وندے کول- وُچتول- جلتول- چابکول- سرعت ورکول- (۲)تیارول- مضبوطول-

چاخون:(چا-خه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چاخول-

چاخونکے:(چا-خه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چاخونکی مؤنث چاخونکې- وګورئ چاخول-

چاخونګ:(چا-خه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاخول-

چاخونه:(چا-خه-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاخول-

چاخوهٔ:(چا-خه-وَهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چاخول-

چاخه:(چا-خه)اسم- مؤنث- جاخه- ازجل برجل-

چاخېدل:(چا-خې-دل)مصدر لازم- (۱) چاقېدل- جلتېدل- تېزېدل- ګړندے کېدل- چابکېدل- وُچتېدل- تندېدل- چټکېدل- وندے کېدل- (۲)تیارېدل- مضبوطېدل-

چاخېدن:(چا-خې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چاخېدل-

چاخېدنګ:(چا-خې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاخېدل-

چاخېدنه:(چا-خې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاخېدل-

چاخېدونکے:(چا-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چاخېدونکی- مؤنث چاخېدونکې- وګورئ چاخېدل-

چاخېدهٔ:(چا-خې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چاخېدل-

چادر:(چا-دَر)اسم- واحد-مذکر- (۱)څادر- تاخر- ټکرے- ټیکرے- پړونے- پټو- شال- د سړو اوړنے- (۲)تمبو- خېمه- (م- فارسی)-

چادری:(چا-د-ری)اسم- واحد- مؤنث- برقع- برقه- څادری- اوړنه-

چادی:(چا-دی)اسم صفت- واحد- مذکر- احمق- کم عقل- ناپوهه- بېوقوف- بودلے- ساده- بوده- شادونه ببېړا- جمع چادیان-

چادیتوب:(چا-دی-توب)اسم- مذکر- ساده توب- سادګی- کم عقلی- بودلیتوب- حماقت- ناپوهی-

چادی چکمار:(چا-دی-چک-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- ډېر ساده- ډېر کم عقل- لوده- زیات بې عقله- لهٔ عقله پلے- لوده- د عقل دُښمن- د عقل نه خوار- هغه څوک چې په هېڅ نه پوهېږی-

چاړه:(چا-ړه)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ بې مُده-

چاړی:(چا-ړی)اسم- واحد- مؤنث- ړنګتی- اړیکی- لینګته- اړینګتی- لنګتی- انډی- انډی وهنه- پښه ارمونه-

چاړی:(چا-ړی)اسم- مؤنث- وګورئ پړکے تړ-

چار:(چار)اسم- مذکر- (۱)کار- کسب- پېشه- مشغولیت- چر- چره- عمل- کړه- سبب- (۲)علاج- چاره- تجویز- بند- ترتیب- (۳)ذریعه- چاره- ګزاره- بهانه- وجه- (۴)چاروناچار- (۵)خاپ- لیک- کښل-

چارادام:(چار-اَ-دام)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چار اندام- (م- هندی)-

چارندام:(چار-اَن-دام)اسم- اودس- چارادام- څلور اندامه وینځنه-

چاربزه:(چار-بو-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پټیره-

چاربېته:(چار-بے-ته)اسم- واحد- مؤنث- د پښتو شاعری هغه قسم چې تاریخی یا د مینې قیصې پکښې بیانیږی- تسلسل پکښې هم شرط دے- د چاربېتې سر بیابیا دهر بند نه وروستو ویلے کیږی- د بندونو د مصریو شمېر پکښې د ۴ نه تر۲۰ پورې وی-

چارپا:(چار-پا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چارپايۍ-

چارپاره:(چار-پا-ره)اسم- مؤنث- (۱)ټکره وریږې- دل شوې وریږې- (۲)د ټوپک ګولۍ-

چارپائی:(چار-پا-ئی)اسم- واحد- مذکر- کټ- چپرکټ-

چارپايۍ:(چار-پايۍ)اسم- واحد- مذکر- څلوربولے- څلورپښے- د څلورو پښو حیوان- خناور- څاروے- حیوان- ښکر- مال- جمع چارپایان-

چارپایه:(چار-پا-یه)اسم- (۱)حیوان- چارپايۍ- څلوربول- (۲)خرپوځي-

چارپایګان:(چار-پايۍ-ګان)اسم- د دروازې یا کړکۍ چوکاټ-

چارپنګی:(چار-پنګ-کی)اسم- مؤنث- اندرپایه- د لرګیو پوړۍ-

چارپېر:(چار-پېر)صفت- وګورئ چاپېر-

چارپېرونکے:(چار-پې-ره-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- احاطه کونکے- حاوي- ګېره اچونکے-

چارپېره:(چار-پې-ره)اسم- مذکر- (۱)په فوځ کښې د شپې نوکرۍ کونکے- (۲-اسم- مؤنث)یوه فوځي اصطلاح- (۲)د شپې نوکري-

چارپېره:(چار-پې-ره)اسم- مؤنث- وګورئ چاپېر-

چارتاره:(چار-تا-ره)اسم- مؤنث- د یو ساز نوم- څلورتاره- د موسیقۍ یو آله-

چارتراش:(چار-تراش)اسم- واحد- مذکر- تخته- تمبه- هواره- او څلور کوټیزه تخته- دکے-

چارټ:(چارټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نقشه- (۲)د کشتۍ چلونکیو مغه نقشه چې د ساحلونو د ژورو ځایونو او په سمندر کښې د پټو خطرناکو کاڼو متعلق معلومات پکښې وي (۲)مغه معلوماتي پاڼه چې نقشونه او ډایګرامونه لرې او مقیاس ونه لرې-

چارج:(چارج)اسم- (۱)بېټرۍ د برقي طاقت نه په یوه مخصوصه طریقه ډکونه- (۲)ټوپک ډکونه- (۲)اختیار- واک- قبضه- منصب- ملکیت- (۴)سمت- مقام- (۵)امر ورکونه- فرمان ورکونه- (۶)حمله کونه- تحریکونه- لمسونه- (۷)قیمت- مالیه- (۸)الزام- تور- (م- انګریزي)-

چارجامه:(چار-جا-مه)اسم- مؤنث- جامې- د ښځو د حیض کپړه یا ټیکرے چې د کډی په شکل کښې تړے شي-

چارجول:(چا-رې-جه-وَل)مصدر لازم- (۱) ډکول- بېټرۍ ته د برقي زو په ذریعه طاقت ورکول- (۲)حکم ورکول- فرمان ورکول- (۲)حمله کول- (۴)قبضه کول-(۵)الزام لګول- تور پورې کول- (۶)مالیه لګول- قیمت معلومول-

چارجون:(چا-رې-جه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چارجول-

چارجونکے:(چا-رې-جه-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چارجول-

چارجونګ:(چا-رې-جه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چارجول-

چارجونه:(چا-رې-جه-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چارجول-

چارجوه:(چا-رې-جه-وَه)حاصل مصدر- وګورئ چارجول-

چارجېدل:(چا-رې-جې-دَل)مصدر لازم- (۱)ډکېدل- د برېښنا څخه ډکېدل- (۲)امر ورکول کېدل- فرمان ورکول کېدل- (۳)تحریکېدل- حمله کېدل- لمسېدل- (۴)قبضه کېدل- (۵)اتهام واردېدل- تورېدل- (۶)الزام لګېدل- قیمت معلومېدل- مالیه لګېدل-

چارجېدن:(چا-رې-جې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چارجېدل-

چارجېدنګ:(چا-رې-جې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چارجېدل-

چارجېدنه:(چا-رې-جې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چارجېدل-

چارجېدونکے:(چا-رې-جې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چارجېدل-

چارجېده:(چا-رې-جې-دَه)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چارجېدل-

چارچاپېر:(چار-چا-پېر)صفت- مذکر- وګورئ چاپېر-

چارچاپېره:(چار-چا-پې-ره)صفت- مؤنث- (۱)تېرچاپېره- ګېرچاپېره- ګرداګرد- ګرداګرد- خواؤشا- شاؤخوا- (۲)مشغول- بوخت- اخته-

چارچاپېره:(چار-چا-پې-ره)اسم- مؤنث- وګورئ دائره-

چارچرخے:(چار-چَر-خے)اسم- واحد- مذکر- نهه نینګانې- د ملکانو یوه لوبه-

چارچشم:(چار-چَ-شم)اسم صفت- واحد- مذکر- حریص- لالچي- جمع چارچشمان-

چارچشمه:(چار-چش-مه)اسم- مؤنث- د سپي یو قسم-

چارچلند:(چار-چَ-لند)اسم- مذکر- (۱)چال چلند- کردار- (۲)حرکت ګرځېدنه- (۳)راشه درشه-

چارچوب:(چار-چوب)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوکاټ- چوګاټ- د لرګیو څخه جوړ شوے قالب- کالب- غالب- (۲)محدود تعین شوی اصول او شرائط- مقرر اصول او ضوابط-

چارچوبه:(چار-چو-به)اسم- مؤنث- تنګ کور- تنګ ځايۍ-

چارچوبی:(چار-چو-بی)اسم- مؤنث- وګورئ چرچوبی-

چارچوبی:(چار-چو-بی)اسم- مؤنث- وګورئ چرچوبی-

چارچولی:(چار-چو-لی)اسم- مؤنث- وګورئ چرچوبی-

چارخانه:(چار-خا-نه)اسم- مؤنث- (۱)یو مشهوره کپړه- مغه کپړه چې پرې مربع شکل کوروندا جوړ وي- (۲)مغه کپړه چې دسترخوان او د بسترې مخونه ترې جوړولے شي- (۳)مغه لوښے چې سګرټ تماکو، او ماچس وغېره پکښې ایښوے شي-

چارخول:(چار-خول)اسم- واحد- مذکر- (۱)د چرګ چوټے- د چرګ په سر غوښین ځنډے- چارخوله- چرګخول- ځنډے- پرپره- کرکره- قرقره- چارخولګ- چارغولګ- چارخوټل- چارخولے- چارخېله- چارغول- چرخول- چرخولے- چرخېل- جغه- چوټے- چونټے- کلغے- څوټکه- خوله- (۲- اردو) شمله- طره-

چارخولک:(چار-خو-لک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چارخول-

چارخوله:(چار-خو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چارخول-

چارخولے:(چار-خو-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چارخول-

چارخوښل:(چار-خو-ښل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چارخول-

چارخېله:(چار-خې-له)اسم- واحد-مؤنث- وګورئ چارخول-

چاردانګ:(چار-دانګ)اسم- مذکر- ټوله دنیا- ویره دنیا- درسته نړۍ- څلور وارہ ګټه- څلور خوا- څلور کُنجه دنیا-

چاردانګے:(چار-دانګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- نر باز-

چاردېوارۍ:(چار-دې-وا-رۍ)اسم- مؤنث- وګورئ چاردېوالۍ-

چاردېوالۍ:(چار-دې-وا-لۍ)اسم- مؤنث- هغه دېوال چې دَ کور نه ګېر چاپېر وهلے شوے وی- دَ کور احاطه- دَ پردې دېوال -چاردېوارۍ-

چارړے:(چار-ړے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم شکرۍ-

چارساله:(چار-سا-له)اسم- مؤنث- (۱)دَ پټوارۍ دَ جمع بندۍ کتاب- (۲)څلور کلیز- څلورکلنے-

چارسُو:(چار-سُو)اسم- مذکر- (۱)دوه سرکونه چې یو بل پهٔ زاویه قائمه پرېکوی- چوراه- څلورلارے- چوک- څلورمخے- چارراهی- دَ څلور لارو دَ تقاطع نقطه- چلیپا- چوق- وستل- څلور اړخیز ځائ- چرته چې څلور لارې یو ځائ کیږی- هغه ځائ چې څلور لارې ترې بېلیږی- چوګله- (۲)دَ اور بلولو وړه کوټکۍ- (۳)بېه-

چارشنبه:(چار-شم-به)اسم- مؤنث- (۱)دَ هفتې پنځمه ورځ- شورو- دَ نهې او زیارت تر مېنځه ورځ- پنېځم- شروع- پنځمه ورځ- آخره-

چارښاخه:(چار-ښا-خه)اسم- مؤنث- چارښاخی- خاښی- څلورغاښې- سکو- دَ لرګی نه جوړه شوې دَ زمیدارۍ آله چې بُوس بادولو او پوړ لړلو دپاره استعمالیږی-

چارښاخی:(چار-ښا-خی)اسم- مؤنث- وګورئ چارښاخه-

چارعرق:(چار-عَ-رق)اسم مرکب- دَ څلورو مېوو رس-

چارغول:(چار-غول)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چارخول-

چارغولک:(چار-غو-لک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چارخول-

چارقوتی:(چار-قو-تی)اسم- مؤنث- هغه ځائ چې هر وخت پکښې دَ خلقو ګڼه ګونه وی-

چارک:(چا-رک)اسم- واحد- مذکر- دَ سېر څلورمه حصه- دَ ګز څلورمه حصه- یو پهٔ څلورمه- څلورمه- پاؤ- جمع چارکونه-

چارکونج:(چار-کونج)اسم- واحد- مذکر- (۱)چار کونجه- څلور کونجه- څلور ګوټے- (۲)یو قسم کولچې چې څلور کونجه ئ وی- چار کونجه کلچې-

چارکے:(چا-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- چاریک- یو چارک- یو چاریاک- چاریاکے- پاؤ- څلور چټاکی- هغه کانے چې پاؤ وی-

چارکر:(چار-کر)اسم- واحد- مذکر- کارګر- کارکونکے- مزدور- جمع چارکری- مؤنث چارکره- جمع مؤنث چارکرې-

چارکرندے:(چار-ګرن-دے)اسم- واحد- مذکر- کارکرندے- همېشه خپل کارکونکے-

چارکزے:(چار-که-زے)اسم- مذکر- وربښمین پټو-

چارګل:(چار-ګل)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټیک- غټ پربدار مېځکے- دَ ښځو دَ پوزې کالے- پزغمے- (۲)غلے- جمع چارګلونه-

چارګلے:(چار-ګ-لے)اسم- واحد- مذکر- ټوپی ګل- ترخی- یو قسم بوټے چې زیړ ګلونه کوی-

چارکنده:(چار-کن-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ تمبو یا کېږدۍ نه ګېر چاپېره کنستلے شوے لښتے- چړی- چاری- چارند- جمع چارکندې-

چارکے:(چار-کے)اسم- مذکر- دَ سوزولو یو قسم بوټے- دَ سوزولو یو قسم لرګے-

چارل:(چا-رل)مصدر متعدی- څارل- یو څیز پهٔ یو خاص وخت کښې معلومول- تحقیق کول-

چارلنړی:(چار-لن-ړی)اسم- مؤنث- ملنړی- ښنړی- رخشند- ریشخند- پسې خندل-پیشارې- ټوقې ؤشتې- پهٔ چا پورې دَ سپکاوی پهٔ غرض ټوقې ؤشتې او خندا برټا کول-

چارلیار:(چار-لیار)اسم مرکب- کار روزګار- چاره- چار- کار-

چارم:(چا-رم)اسم عدد- مذکر- څلورم-

چارماغ:(چار-ماغ)اسم- واحد- مذکر- جوز- غز- اکوړ- چارمغز-

چارمغز:(چار-مغز)اسم- مذکر- (۱)اکوړ- چارماغ- مټک- غز- جوز- اوغز- (۲)څلور قسمه مغز(چغجے)چې طبیبان ئ اکثر پهٔ دوایانو کښې استعمالوی- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ غز-

چارمېخ:(چار-مېخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې دَ زکام لهٔ کبله ئ سینه نښتې وی- (۲)تر خلې ړک- اغېر- غریک- (۳)دَ څارو یو قسم بیمارۍ چې پرې راشی نو واښهٔ (ګیاه) نهٔ شی خوړے- (۴)هغه ځوک چې پهٔ څلور اندامه (پهٔ دواړو لاسو او دواړو پښو ) او پهٔ څلورو موږو ترلے شوے وی- یعنی هر اندام ئ بېل بېل ترلے شوے وی-

چارن:(چا-رن)حاصل مصدر- وګورئ چارل-

چارناچار:(چار-نا-چار)متعلق فعل- مجبوراً- خامخا- اروموی- پهٔ زړهٔ ماتی- پهٔ مجبوری- پهٔ بې وسی- کام نا کام-

چارند:(چا-رند)اسم- مذکر- وګورئ چارکنده-

چارندوکے:(چا-رن-دُو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- کار وبستونکے- کار روانونکے- کاریګر- چارو- خواری کښ- محنتی- زیارکښ- کوښښی- زحمت کښ- کوششی- کارکن- جمع چارندوکی- مؤنث چارندوکې-

چارنګ:(چا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ چارل-

چارنه:(چا-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چارل-

چارنے:(چار-نے)اسم- واحد- مذکر- کسبګر- کسبه- دَ کسب خاوند- جمع چارنی- مؤنث چارنې-

چارو:(چا-رو)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چارندوکے-

چاروغه:(چا-رو-غه)اسم- مؤنث- (۱)د کچه څرمنې یو قسم پنې چې مخ ئ د لمڅی نه جوړ شوے وی- د لمڅی نه جوړې پنې- جمع چاروغې-

چارول:(چا-ره-ول)مصدر متعدی- پۀ چا کار کول- د چا نه کار اخستل-

چارونکے:(چا-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چارونکی- مؤنث چارونکې- وګورئ چارل-

چاروے:(چار-وے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ چارپائ (۲)چادرپشی-

چاره:(چا-ره)اسم- مؤنث- (۱)عمل- کسب- فعالیت- بند- بند بنا- مرسته- چل- پیشه- مشغولیت- چار- کار- چره- لاره- چر- کړه- انتظام- بندوبست- پروګرام- (۲)تدبیر- (۳)منده- زغل- خفاسته- خغل- (۴)تاخ- تاخت- (۵)ونده- د ښکرز د پاره تیاره کړے شوې خوراکه- شنۀ او وچه ګیاه-

چاره ساز:(چا-ره-ساز)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مدد کوونکے- مرستیال- معاون- مددګار- کومکی- کومک کونکے- (۲)علاج کونکے- چاره کونکے- چاره ګر- (۳)خدائ پاک-

چاره سازی:(چا-ره-سا-زی)اسم- مؤنث- کومک- مرسته- علاج- امداد- لار پیدا کونه- چاره- کارسمونه-

چاره ګر:(چا-ره-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چاره ساز-

چاره ګری:(چا-ره-ګه-ری)اسم- مؤنث- وګورئ چاره سازی-

چارۀ:(چا-رۀ)حاصل مصدر- وګورئ چارل-

چاری:(چا-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱) د اسپنې نه جوړه یوه آله چې د زمینداری او نور قسمه کارونه پرې کولے شی- پل- بیلچه- ینکه- نجه- پوړی- رمبه- (۲)مذکر- څلور غابنے پسۀ- دوه کلیز پسۀ- دوه کلنے ګډ-

چاری:(چا-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کارکونکے- (۲)تکل- (۳)تباه- برباد- خراب-

چاریار:(چار-یار)اسم مرکب- جمع- مذکر- د انحضرت صلی الله علیه وآله وسلم څلور یاران- حضرت ابوبکر صدیق، حضرت عمرفاروق، حضرت عثمان، حضرت علی رضوان الله علیهم اجمعین- خلفائ راشده، خلفائ راشدین-

چاری چپر:(چا-ری-چه-پر)اسم- مذکر- د ماشومانو د سورلی یو قسم لوبه- خرکی خرکی-

چاریک:(چا-ریک)اسم- مذکر- وګورئ چارک-

چارې:(چا-رې)تابع مهمل- (۱)لارې سره د لاحقې پۀ طور استعمالیږی- لکه لارې چارې- (۲)د چاره جمع-

چارېکار:(چا-رې- کار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چربکار-

چارېکاری:(چا-رې-کا-ری)اسم- مؤنث- وګورئ چربکاری-

چاری:(چا-ری)اسم- مؤنث- (۱)چاری- ګری- (۲)چارګنده- چارنده- (۳) اوږې مېوکے- (۴)د ماشومانو د لوبو یو ورکوټے کانے-

چاړے:(چا-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- بیوقوف- کم عقل- نادان- ناپوه- احمق-

چاړ:(چاړ)اسم- د چمیار مغه قالب چې د پنو او پیزار جوړولو پۀ کار کښې استعمالیږی- (۲)د برستنې استر-

چاړا:(چا-ړا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د ونیلو او اوریدلو نه محرومه- نیم ژبے- مغه څوک چې واضحه او صفا خبرې نۀ شی کولے- ترترے- تات- اروړ- ګونګ- ګنګ- ګونګے- کنګوړے- بې خلې او بې ژبې- چاړه- (۲)ناپوه- کم عقل- احمق- شادوله- ساده- بیرا-

چاړاتوب:(چا-ړا-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترتریتوب- توړی توب- توتله توب- (۲)بیراتوب- ناپوهی- ساده توب-

چاړچوبی:(چاړ-چو-بی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرچوبی-

چاړۀ:(چا-ړۀ)اسم صفت- واحد- مذکر- چاړا- ګونګے- (متروک)- جمع چاړۀ ګان-

چاړۀ:(چا-ړۀ)اسم- مؤنث- (۱) د اسپنې مغه پترے چې یو اړخ ئ تیره وی او ورته د لرګی یا مړوکی لاستے لګیدلے وی د ځاروو حلالولو، غوښو پربکولو او نور ډیر کارونو د پاره استعمالولے شی- چاړو- چوړو- چړه- ستاوه- ستوه- چوړوکی- (۲)پره- ترازه-

چاړۀ بند:(چا-ړۀ-بند)اسم- واحد- مذکر- قصاب- ونډیمار- مغه څوک چې ځاروی حلالوی، ونډې کوی او بازار کښې ئ خرڅوی-

چاړۀ ګر:(چا-ړۀ-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- لوهار- لوار- مغه څوک چې چړې جوړوی- چړې جوړونکے-

چاړی:(چا-ړی)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ چاړا-

چاړی:(چا-ړی)اسم- مؤنث- وګورئ چاړی- (افغانستان)-

چاړے:(چا-ړے)اسم- واحد- مذکر- یو مارغۀ چې د ټپوس نه لږ لوئ او سپین تور وی- د سپینو او تورو وزرو لرونکے لوئ مارغۀ چې عموماً خان له ګرځی-

چاړے:(چا-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- ګونګے- پۀ تته ژبه خبرې کونکے- مونث چاړی- جمع چاړیان-

چاسکو:(چاس-کو)اسم- مذکر- د سترګو دارو- څښکو-

چاښت:(چاښت)اسم- مذکر- ځاښت-

چاښنی:(چاښ-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناشتا- ناشته- (۲)څکه- څکنه- مغه خوراک چې د ډوډۍ نه مخکښې خوړلے کیږی- څکه کتنه- خوارۀ کتنه- (۳)مساله- (۴)یوه پنجه ساز- کم ساز- ډیر لږ ساز-

چاښے:(چا-ښے)اسم- واحد- مذکر- کرکرے- اټېرن- ځاښے- ډېرن-

چاښی:(چا-ښی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرخی-

چاغ:(چاغ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تیار- مضبوط- څرب- شلنې- جغمې- مزے- تکړه- روغ رمټ- تازه- د روغ بدن خاوند- (۲)تېز- چست- چاخ- چابک- (۳)شور زوږ- (۴)ښیرې- چاک- دړې- دړې شوے لرګے-

ئ (څې-رل)، ئ (مې-ره-ول)، ئ (پیا-لې)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

(۵)خاوند- (افغانستان)-

چاغتوب:(چاغ-توب)اسم- مذکر-(۱)ځرب والے- چابکی- تیارتوب- چاغوالے- چاغښت- (۲)چُستي- تېزي- تېزوالے-

چاغتیا:(چاغ-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ چاغتوب-

چاغښت:(چا-غښت)اسم- مذکر- وګورئ چاغتوب-

چاغل:(چا-غل)اسم- واحد- مذکر- بتکے- د اُبو لوښے- بتکے- بتک-

چاغوالے:(چاغ-وا-لے)اسم- وګورئ چاغتوب-

چاغول:(چا-غه-ول)مصدر متعدی- (۱)ځربول- تیارول- جغمېول- تکړه کول- تازه کول- غټول- (۲)چاغل- څیرل- درې کول- (۳)تېزول- چستول-

چاغون:(چا-غه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چاغول-

چوغونکے:(چا-غه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چاغونکی- مؤنث چاغونکې- وګورئ چاغول-

چاغونګ:(چا-غه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چاغول-

چاغونه:(چا-غه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاغول-

چاغوۀ:(چا-غه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چاغول-

چاغېدل:(چا-غې-دل)مصدر لازم- (۱)مزے کېدل- جغمېدل- تکره کېدل- تازه کېدل- ځربېدل- غټېدل- (۲)څیرې کېدل- درې کېدل- ماتېدل- (۳)تېزېدل- چستېدل-

چاغېدن:(چا-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چاغېدل-

چاغېدنګ:(چا-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاغېدل-

چاغېدنه:(چا-غې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاغېدل-

چاغېدونکے:(چا-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد-مذکر- جمع چاغېدونکی- مؤنث چاغېدونکې- وګورئ چاغېدل-

چاغېدۀ:(چا-غې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چاغېدل-

چاق:(چاق)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ځورب- تکره تیار- غټ پټ- غوښین- تندرست- روغ رمټ- جغمټ- چاغ- صحت مند- تازه- شلند- مزے- (۲)چاوړ- درز- رخنه- (۳)تېز- تند- چابک- چُست- چاخ-

چاق چمند:(چاق-چۀ-مند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چاق چوبند-

چاق چوبند:(چاق-چو-بند)اسم صفت- (۱)تکره- توانا- غټ- روغ رمټ- چاق چمند- (۲)چُست- تېز-

چاقو:(چا-قو)اسم- واحد- مذکر- مغه تېغ چې د ځتکی او مندرانې وغېره پربکولو سبوو سپینولو او نورو کارونو کښې پکار راځي- بندېدونکې چاړۀ- قلم تراش- مغه تېرۀ آله چې پلکے او لاسکے يې يو مومره وی- چاکو- چکو- چقو- چکی- چکے- کاچو- جمع چاقوان/چاقوګان-

چاقوساز:(چا-قو-ساز)اسم- واحد- مذکر- مغه څوک چې چاقوان جوړوی- چاقو جوړونکے- چاکوساز- جمع چاقوسازان-

چاقول:(چا-قه-ول)مصدر متعدی- (۱)ګرندے کول- چاخول- تېزول- (۲)مزے کول- ځربول- غټول- (۳)څېرې کول- درې کول- ماتول-

چاقون:(چا-قه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چاقول-

چاقونکے:(چا-قه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چاقونکی- مؤنث چاقونکې- وګورئ چاقول-

چاقونګ:(چا-قه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چاقول-

چاقونه:(چا-قه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاقول-

چاقوۀ:(چا-قه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چاقول-

چاقېدل:(چا-قې-دل)مصدر لازم- (۱)چستېدل- تېزېدل- (۲)تکړه کېدل- مزے کېدل- ځربېدل- جغمېدل- غټېدل- (۳)څېرې کېدل- درې کېدل- ماتېدل- چودل-

چاقېدن:(چا-قې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چاقېدل-

چاقېدنګ:(چا-قې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چاقېدل-

چاقېدنه:(چا-قې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چاقېدل-

چاقېدونکے:(چا-قې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چاقېدونکی- مؤنث چاقېدونکې- وګورئ چاقېدل-

چاقېدۀ:(چا-قې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چاقېدل-

چاک:(چاک)اسم- مذکر- زخم- شلېدون- شګاف- چاوړ- خصوصاً د قمیص ځاک- چود- درز- چوک- څاک- څیر-

چاک:(چاک)اسم- واحد- مذکر- د چونې نه جوړ د ګټې مومره پنسل شان چې په مدرسو کښې پرې په توره تخته لیکل کولے شی- (م- انګریزی)-

چاکتو:(چاک-تو)اسم- مذکر- د یو بوټی دانې چې سفوف يې خوږو سترګو د پاره استعمالولے شی

چاک چاک:(چاک-چاک)اسم صفت- مرکب- ټوټې ټوټې- سورے سورے

چاکر:(چا-کر)تابع مهمل- وګورئ نوکر-

چاکران:(چاک-ران)اسم- (۱)زخم- شلېدون- شګاف- چاوړ-

چاکری:(چا-ک-ری)اسم- واحد- مؤنث- ملازمت- خدمت- نوکری- خدمتکاری-

چاکسو:(چاک-سو)اسم- مذکر- چکښو- څکښو- جوخشو- ښاښکو- د یو یونانی دارو نوم- یو قسم تور تخم چې د سترګو دارو کښې استعمالیږی-

چاکلیټ:(چاک-لیټ)اسم- واحد- مذکر- ټافی- مغه د ترو ګولۍ چې سلېښناکې او پستې وی- (م- انګریزی)-

چاکو:(چا-کو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چاقو-

چاکو ساز:(چا-کو-ساز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چاقو ساز-

چاکورے:(چا-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چاکرې نوکر- مونث چاکوری- (۲)بیوبیوان-

چاکی:(چا-کی)اسم صفت- واحد- مذکر- چاک لرونکے- درزی- درز لرونکے- چاړلے- شوکېدلے- شکېدلے- مات شوے-

زبر (غ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ۀ (ز-ړه)، ۀ (پو-ښې-دۀ)

چاکې:(چا-کې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ چک چکه-

چاګل:(چا-ګل)اسم صفت- واحد- مذکر- سست او بېکاره- ناراسته- ټنبل- کاهل- سست او ناتوانه سړے- مؤنث چاګله-

چاګل:(چا-ګل)اسم- واحد- مذکر- دَ اُبو وړوکے مشک- دَ اُبو وړوکے ګوډے- دَ اُبو وړوکے ژے- بتک - دَ څړمنې یا کرمېچ تېکے- چاګله-

چاګله:(چا-ګ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چاګل-

چال:(چال)اسم- مذکر- (۱)فرېب- دام- مکر- دوکه- ټګی- چم- چل- (۲)تګ- رفتار- ېون- حرکت- (۳)طرز- ډول- طريقه- سلوک- رويه- (۴)عادت- (۵)دَ اَس رفتار- (۶)دَ شطرنج پهٔ لوبه کښې ګيټی دَ يوې خانې نه بلې خانې ته کونه- دَ لوبې مهرې خوزونه- (۷)دَ تاش وړومبی پاڼه ويشتنه- (۸)چال چلن- طريقه- (۹)کار- فعاليت- (۱۰)قے- استغراق- (۱۱)تار- سپېسے- (۱۲)هُنر- ځيرکی- چالاکی

چال:(چال)اسم- مذکر- (۱)کنده- کوتے- قوتی- قوتے- ژور ځایُ- (۲)کومے- ګوګ- دَ ځلې ګوګ-

چال:(چال)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه اس چې سرهٔ از سپين وېښتهٔ لری- چنے- غوچانے- (۲)دَ جولا دوکان- (۳)خاله- منخوله- (۴)زرکه- زاغاوے- دَ ميلی پهٔ شان يو مارغهٔ- سائنسی نوم اليکټوريس (ALECTORIUS)- (۵)درنګ- دَ مالګې کان-

چالاک:(چا-لاک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مکار- چل باز- ټګ- مکرژن- فرېبی- دوکه باز- چټيس- چم باز- چلولی- فرېبکار- کلنکار- کلانکار- اټکلی- (۲)چټک- چُست- تېز- تند- چابک- چاخ- (۳)پوه- ذهين- هُوښيار- کاغ- (۴)فعال- تکړه- (۵)ارغاړيز- (۶)آفت- (۷)دَ خبرو مړنے- نهٔ وېربدونکے- ژر ژر او پهٔ تادی سره خبرې او کار کونکے- (۸)خبرلوغ-

چالاکی:(چا-لا-کی)اسم- مؤنث- (۱)ټګی- دوکه- چل ول- فرېب- (۲)تيزی- چُستی- چاخ والے- تندی- چابکی- چټکی- (۳)پوهه- هوښيارتوب- (۴)تکړه توب- دَ خبرو مړنے توب-

چالان:(چا-لان)اسم- واحد- مذکر- (۱) جاری- روان- چالو- فعال- روان دوان- پهٔ سفر کښې شروع شوے- (۲)پروانه- سمن- بيچک- دَ سامان يا رقم رسيد- دَ استولی څيزونو رسيد او فهرست- دَ روپو رسيد- راداری- راهداری- اجازت نامه- چالان- دَ يوې محکمې نه بلې محکمې ته استونه- دَ تحقيقات نه پس عدالت ته دَ ملزم روانګی-

چالانول:(چا-لا-نه-وَل)مصدر متعدی- (۱)چالان کول- لګول- روانول- پېل کول- (۲)لېږل- استول- ملزم عدالت ته استول- (۳)بندی کول-

چالانون:(چا-لا-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چالانول-

چالانونکے:(چا-لا-نه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چالانونکی- مؤنث چالانونکې- وګورئ چالانول-

چالانونګ:(چا-لا-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چالانول-

چالانونه:(چا-لا-نه-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چالانول-

چالانوهٔ:(چا-لا-نه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چالانول-

چالانېدل:(چا-لا-نې-دَل)مصدر لازم- (۱)چالان کېدل- دَ څهٔ جُرم پهٔ وجه عدالت ته وړاندې کېدل- (۲)روانېدل- استولے کېدل-

چالانېدن:(چا-لا-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چالانېدل-

چالانېدنګ:(چا-لا-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چالانېدل-

چالانېدنه:(چا-لا-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چالانېدل-

چالانېدونکے:(چا-لا-نې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چالانېدونکی- مؤنث چالانېدونکې- وګورئ چالانېدل-

چالانېدهٔ:(چا-لا-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چالانېدل-

چالباز:(چال-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- ټګ- دوکه باز- دوکه مار- چمباز- چلی- چلناک- تېرابستونکے- چال کونکے- چالاک- هوښيار- عيار- فرېبی- چل ولی-

چالبازی:(چال-با-زی)اسم- مؤنث- چالاکی- ټګی- چلول- چالچودی- غداری- فرېب- چارسوبيسی- ټګی برګی- (کول مصدر)-

چالتار:(چال-تار)اسم- مذکر- وګورئ چلتار-

چال چلن:(چال-چ-لن)اسم مرکب- طور طريقه- خوئ خصلت- عادت- دَ وُسېدو انداز- چارچلند- چارچلن- چال چلند- چاله- رنګ- کړهٔ وړهٔ- رنګ ړنګ- اخلاق- (۲)سلوک- رويه- راشه درشه-

چال چلند:(چال-چ-لند)اسم مرکب- وګورئ چال چلن-

چال چودی:(چال-چو-دی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چالبازی-

چالن:(چا-لن)اسم- مذکر- وګورئ چالان-

چالو:(چا-لو)اسم صفت- (۱) چل- چلند- روان- بهاند- چالان- جاری- شروع- (۲)لګېدلے- (۳)ګويا- (کول، کېدل، مصدرونه)-

چاله:(چا-له)استفهامی ضمير- چا دَ پاره- چا ته-

چاله:(چا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طرز- روش- طريقه- لار- قاعده- اُصول- رفتار- (۲)سپينه- (۳)غټه اسپه- لويه اسپه-

چالی:(چا-لی)اسم صفت- واحد- مذکر- ټګ- چلی- چل ولی- دوکه باز- چال باز- فرېبکار- چلباز- چم باز-

چالی:(چا-لی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پټېره-

چام:(چام)اسم صفت- واحد- مذکر- کوروړے-

چامارغ:(چا-مارغ)اسم- واحد- مذکر- غُز- اکوړ- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ غُز-

چامبه:(چام-به)اسم- مؤنث- چامبېل- رامبېل- چمبه-

چامبيره:(چام-بی-ره)اسم- واحد- مؤنث- لويه ټوکره- ړکره- دَ خاورو لوټو لوئ چم-

چامبېل:(چام-بېل)اسم- واحد- مذکر- يو ډول ورکوټے سپين ګل چې ډېر ښهٔ بوئ کوی نور قسمونه ئې هم شته خو سپين قسم کښې ډېر پېدا کيږی-

ی (څی-رَل)، ې(هې-ره-وَل)، ئ(يا-لی)، ے(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

چامبېلے- چامبېلی- نباتاتی نوم جېسمینم ګرېنډیفلورم (JASMINUM -GRANDIFLORUM)

چامبېلے:(چام-بې-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چامبېل-

چامپ:(چامَپ)اسم- (۱)یو قسم خونده ور خوراک چې دَ آلو، کوفتې، رنګ رنګ مسالو او دَ دالو دَ اوړو څخه تیارولے شی دا څیزونه پۀ قالبونو کښې اچوی او پۀ کړهی کښې یٔ سرۀ کوی- (۲)دَ غوښې نری نری ترَشې چې پۀ کړهی کښې سرې کولے شی-

چامپه:(چام-په)اسم- مؤنث- (۱)ڈپه- چپه- موج- (۲)دَ وُږدوالی یو مقیاس- (۳)پنجه- چمبه- چانبه- چانپه- جمع چامپې-

چامته:(چام-ته)اسم- مؤنث- وګورئ چمته-

چامه:(چا-مه)اسم- مؤنث- بدله- غزل- (م- فارسی)-

چامه ګو:(چا-مه-ګو)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بدلی- بدله زن- شاعر-(افغانستان)-

چان:(چان)اسم- مذکر- (۱)دَ کلیسا ټلی- دَ کلیسا زنګ- دَ کلیسا ژنګ-

چان:(چان)اسم- مذکر- جان-

چانبه:(چام-به)اسم- مؤنث- (۱)وګورئ چامپه- (۲)دَ میزری دَ بوټی ږپه-

چانبېل:(چام-بېل)اسم- مذکر- وګورئ چامبېل-

چانپه:(چام-په)اسم- مؤنث- وګورئ چامپه-

چانته:(چان-ته)اسم- مؤنث- وګورئ چـته-

چانټه:(چان-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کارتوسو وغېره پېټی چې ملا نه تاوولے شی- خولی- شخولی- کردنی- غاړکی- (۲)یونټ- کارټولکے- جمع چانټې-

چانجلے:(چانج-لے)اسم- واحد- مذکر- خوړلے شوې کپړه- چنچل-

چانچور:(چان-چور)اسم- واحد- مذکر- کوښی- دَ ماشومانو یو قسم لوبه چې دَ غزانو پۀ پوستکو کولے شی-

چانچو پانچو:(چان-چو-پان-چو)اسمِ صفت- کمزورے- اړوکی اړوکی- ټپ ټېپ- نرے پړے-

چاندانی:(چان-دا-نی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)غوښه خور- (۲)نفسانی- شهوت ناک-

چاندماری:(چاندَ-ما-ری)اسم- مؤنث- چارماری- چلماری- نښې ویشتنه- نشانه بازی- چرماری- دَ ټوپک او نورو وسلو پۀ ګولیو سره دَ چا وژنه- چال ماری- دَ فوځیانو نښه ویشتنه- دَ نښې ویشتو پرېکټس-

چاندی:(چاند-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)روجائے- دَ غالی پوښ- دَ قالینې پوښ- روی کش- روی پوښ- هغه ټوکړه چې پرې بستر، قالین او نور څیزونه هوارېږی-

چاندی:(چان-دی)اسم- مؤنث- (۱)یو سپین دهات چې کالی او روپی ترې نه جوړولے شی- کم اصل زر- سپین زر- (۲)سوچه- پاک- نینولے- کره- بې عیبه- بې وټه- بې غشه- صادق- سپېڅلے- سپین زړے- خالص-

چانړو:(چان-ړو)اسم- مذکر- یو قسم نشه چې افیون (تاریاک) پۀ اُبو کښې پخولے او چلم کښې څښلے شی- جنړو- جانړو-

چانړه:(چانَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- جمع چانړې- (۱) قاش- دړه- نیلمه- نیله- ټنکره- ټنګه- ترازه- تروزه- منړه- چنړه- ترتنړه- (۲)حصه- برخه- خوا- (۳)ټوټه ټوټه-

چانړی:(چان-ړی)اسم- مؤنث- (۱)اړنګته- (۲)پۀ غېږ کښې- (بلوچستان)-

چانړی:(چان-ری)اسم- مؤنث- کوزکزکی-

چانس:(چانس)اسم- واحد- مذکر- (۱)تصادف- (۲)شانس- وار- نمبر- موقع- (۲)بخت- طالع- اقبال- (۴)بورس- برس- (۵)چال- چم- ټګی- فرېب- جمع چانسونه- (م- انګریزی)-

چانسلر:(چانس-لر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ یونیورسټی دَ ټولو نه لوئ عهدېدار- (۲)دَ جرمنی صدرِ مملکت- (م- انګریزی)-

چانسی:(چانَ-سی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)چم باز- چلی- چلباز- فرېبکار- (۲)- خوش قسمته- خوش بخته- طالع من- دَ چانس/شانس خاوند-

چانګ:(چا-نګ)اسم- واحد- مذکر- چانېنګ- هغه لوښے چې پخې چایٔ پکښې اچولے شی-

چانکے:(چا-نه-کے)اسم- واحد- مذکر- چانېنګ- نلی- (بادګیر)-

چانګ وانګ:(چانګ-وانګ)صفت- خوروور- چنګ ونګ-

چانے:(چا-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ اُبو څښلو لوښے-

چانے:(چا-نے)صفت- ورچانے- بهر- بیرون- ورچنې- (افغانستان)-

چاڼ:(چاڼ)اسم صفت- مذکر- سوتره- سُتره- صاف شوے- پاک شوے- پاک- غلبېل شوے- کره شوے-

چاڼ:(چاڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱) غلبېل- چڼوونے- څېڅپے- چچ- (۲)لټون- تلاش- غښتنه- (۲)خوښونه- انتخابونه-

چاڼ چاڼ:(چاڼ-چاڼ)اسم صفت- مرکب- مذکر- (۱) غلبېل غلبېل- سورے سورے- (۲)نری نری- لړ لړ- چړ-

چاڼول:(چا-ڼه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)سُتره کول- کره کول- پاکول- صفا کول- (۲)غلبېلول- چڼول- زنخول- دَ غلبېل یا زړوکی نه ایستل- (۳)انتخابول- خوښول- غوره کول- (۴)نینول- چڼول- تحقیقات کول- معلومول- جاج اخستل- لټول- کتل- دَ څۀ څیز پۀ لټون کښې ږېر کرځېدل-

چاڼون:(چا-ڼه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چاڼول-

چاڼونکے:(چا-ڼه-وُونَ-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چاڼونکی- مؤنث چاڼونکې- وګورئ چاڼول-

چاڼونګ:(چا-ڼه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چاڼول-

چاڼونه:(چا-ڼه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چاڼول-

چاڼوۀ:(چا-ڼه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ چاڼول-

چانړه:(چا-نړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه ورکوټے چانړ چې تېل، چايْ یا غوړی ترې چانړولے شی- چانړے- چانړې- (۲)هغه واړۀ لرګی چې دَ تیرونو او برګو دَ پاسه کړ کړ اچولے کیږی- چانړ- چڼ- چانړې- وسک- ګودره- وسې- وسکې- جمع چانړې-

چانړې غوړے:(چا-نړې-غوړے)اسم- واحد- مذکر- دَ بمبېړی هومره الوتونکے یو ښکرور ګونګټ چې زیاتره دَ انځر وُنو کښې پېدا کیږی-

چانړېدل:(چا-نړې-دَل)مصدرِ لازم- چانړ کېدل- چڼېدل- سوتره کېدل- سُتره کېدل- صفا کېدل- کره کېدل- پاکېدل- (۲)نینېدل- چونړېدل- معلومېدل- تحقیقات کېدل- (۲)خوښېدل- غوره کېدل-

چانړېدن:(چا-نړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګرړئ چانړېدل-

چانړېدنګ:(چا-نړې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چانړېدل-

چانړېدنه:(چا-نړې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چانړېدل-

چانړېدونکے:(چا-نړې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چانړېدونکی- مؤنث چانړېدونکې- وګورئ چانړېدل-

چانړېدۀ(چا-نړې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چانړېدل-

چانړې:(چا-نړې)اسم- واحد- مؤنث- چڼوونے- چانړ- چڼ-

چانړې:(چا-نړې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چونړې- (۲)وګورئ چانړه-

چانړے:(چا-نړے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ښکره ور غونے- هغه غونے چې لوئ لوئ ښکرونه لری- (۲)غوځانړے- نر ګونګټ-

چانړے:(چا-نړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چانړه-

چانړے:(چا-نړے)اسم- مذکر- کنګل- کنګر- یخ-

چاوجی:(چاؤ-جی)اسم- مؤنث- چاوجے- څنړه- ژی- کناره-

چاوچاو:(چاؤ-چاؤ)اسمِ صوت- چغارے- چو چو- چون چون-

چاؤد:(چاؤد)اسم- مذکر- (۱)چاک- چود- چودون- درز- شګاف- چاؤدون- څیر- (۲)چو- (۲)تړ-

چاؤدل:(چاؤ-دَل)مصدرِ لازم- (۱)پۀ څۀ څیز کښې درز راتلل- تړکېدل- چیر پکښې پېدا کېدل- دوه ځایه کېدل- خلاصېدل- (دَ بم یا دَ بارودی سرنګ)-

چاؤدلے:(چاؤ-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چاؤدل-

چاؤدن:(چاؤ-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چاؤدل-

چاؤدنګ:(چاؤ-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چاؤدل-

چاؤدنه:(چاؤ-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چاؤدل-

چاؤدول:(چاؤ-دۀ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)چوول- الوزول- (۲)درز کول- چاؤد پکښې پېدا کول-

چاؤدون:(چاؤ-دُون)اسم- وګورئ چاؤد-

چاؤدونکے:(چاؤ-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چاودونکی- مؤنث چاودونکې- وګورئ چاودل-

چاؤدۀ:(چاؤ-دۀ)اسم- مؤنث- جمع چاودې- دَ یخنی لۀ کبله دَ لاسو او پښو دَ څرمنې چاؤدۀ-

چاودۀ:(چاؤ-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چاودل-

چاؤدینګ:(چاؤ-دی-نګ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)سپین سترګے- بې حیا- بې شرم- چاولے- ورانکارے- ابغ نبغ- شریر- (۲)هوائی غشے-

چاؤدېدل:(چاؤ-دې-دَل)مصدرِ لازم- دوه ځایه کېدل- درز کېدل- تړکېدل- سره چودل- منفجره کېدل-

چاودے:(چاو-دے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- تړکېدلے- چاودلے- چې درز ې کړے وی-

چاودے:(چاؤ-دے)صفت- (۱)چاودلے- چادو- چاک- چودلے- درز- (۲)چاودې سترګه- ړنده سترګه-

چاؤدے چاؤدے:(چاؤ-دے-چاؤ-دے)اسمِ صفت- مرکب- سُورے سُورے- درزونه درزونه-

چاوزیک:(چاو-زیک)اسمِ صوت- غوا ته دَ اُبو ځښلو اواز-

چاوش:(چا-وش)اسم- واحد- مذکر- (۱)ستر مشر- نقیب- (۲)ورساتونکے- دربه- دربان- څوکیدار- (م- ترکی)-

چاوښ:(چا-وښ)اسم- ګاړره- څپاړه-

چاول:(چا-وَل)اسم- واحد- مذکر- دَ ابو موری- دَ اُبو خُله- دَ اُبو ورخ- دَ اُبو دانه-

چاول:(چا-وَل)اسم- واحد- مذکر- دَ ګلکارانو هغه آله چې پۀ تار کښې زوړنده وی او دَ لګېدلو خښتو سمون او نېغوالے پرې برابر وی- شال- سال- ځال- شاول- شاقول- جمع چاولونه-

چاوله:(چاؤ-له)اسم- واحد- مؤنث- ورخ- چاول- دَ اُبو رُو- دَ اُبو دانه- دَ ولې خله- دَ اُبو دهنه- دَ اُبو موری-

چاولے:(چاو-لے)اسم- واحد- مذکر- چچ- جمع چاولی-

چاولے:(چاؤ-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چودینګ-

چاونړې:(چاؤ-نړې)اسم- واحد\جمع- مؤنث- چونړې- فوځی کوټ یا قلا-

چاوه:(چا-وه)اسم- مؤنث- هغه خوږه جوشانده چې دَ زکام او ټوخی دَ پاره استعمالولے شی-

چاوی:(چا-وی)اسم- واحد- مذکر- تبر- تبرګے- جمع چاویان-

چاه:(چاه)اسم- واحد- مذکر- کوهے- کوئے- کوے-

چايْ:(چايْ)اسم- جمع- مؤنث- چايْ- چے- چی- یو قسم پانړې چې ګوړې یا چینو او پیؤ سره پۀ اُبو کښې یشولے او څښلے شی- تورې او شنې دوو رنګونو کښې پېدا کیږی-

چائېجوش:(چايْ- جوش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جاجوش-

چايْ خوری:(چايْ-خو-ری)صفت- (۱)دَ چايْ- دَ چایو- هغه څۀ چې پۀ چایو څښلو پورې اړه لری- (افغانستان)-

چايْ خوری:(چايْ-خو-ری)اسم- مؤنث- (۱)جوړې چايْ- پخ شوې چايْ- پخې

شوي چاي- (۲)دَ چائيو څښلو پياله-

چائېخوش:(چايْ-خوش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چاجوش-

چاپل:(چا-ئيل)اسم- واحد- مذکر- برقع- پرده- روبند- نقاب- رویٔ بند- (۲)پچوري-

چائېنک:(چايْ- نک)اسم- واحد-مذکر- وګورئ چانک-

چائېنکه:(چايْ-نه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چائېنک-

چبی:(چَ-بی)اسم- واحد- مؤنث- شکور-

چبېنړ:(چه-بينړ)اسم- وګورئ چبينړي-

چبېنړ خور:(چه-بينړ-خور)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ مر څيز خوراکی- ډېر خوراک کونکے- پهٔ غوړو، ترږو او ترسکونو خوراکونو مئين-

چبينړي:(چه-بی-نړي)اسم- جمع- مؤنث- غوړ او تر خوراکونه- چڼې چبينړي- دَ خوراک څيزونه- ترڅکون خوراکونه- چبينړ-

چبېدل:(چَ-بې-دَل)مصدرِ لازم- ګوړ ګوړ تلل- ځان پسې پښې راکښل-

چبېدن:(چَ-بې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چبېدل-

چبېدنګ:(چَ-بې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چبېدل-

چبېدنه:(چَ-بې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چبېدل-

چبېدونکے:(چَ-بې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چبېدونکی- مؤنث چبېدونکې- وګورئ چبېدل-

چبېدهٔ:(چَ-بې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چبېدل-

چپ:(چَپ)اسم- مذکر- (۱)بې لارې- خطا- غلط- (۲)سپک- بد- (۳)ضد- مخالف- (۴)کينړ- کس- اُړولے- دَ ښی ضد- اپوټه- (۵)- بغېر- بې لهٔ دې- (۲)کوږ- راکوږ-

چپ:(چَپ)اسم- کوکی اخستنه- مچه اخستنه- چپونه- ښکلونه- څپ- چپه اخستنه-

چپ:(چَپ)اسمِ صوت- دَ روټی خوړولو پهٔ وخت دَ خُلې آواز-

چُپ:(چُپ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)غلے- خاموش- ساکت- چوپ- پټه خله- چپه خله- (۲)بې اوازه- بې ږغه- بې غږه- (۳)فعلِ امر- غلے شه- خاموش شه-

چپا:(چَ-پا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چپک ۲-

چپاتی:(چَ-پا-تی)اسم- جمع- مذکر- څوکی- وړې روټی- کُلچې- چپاتی-

چپاتی:(چَ-پا-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه وړه سپکه، ګرده او پلنه روټی چې پهٔ تبخی يا تنور پخولے شی- پنجابی روټی- څپاستے- څپټے- چپاتے- پاستی- چپاتی- چپيت- کُلچه-

چپاتے:(چَ-پا-تے)اسم- واحد-مذکر- وګورئ چپاتی-

چپاټه:(چَ-پا-ټه)اسم- مؤنث- کپی- يو قسم پڼې يا موچڼې- يو قسم پېزار- جمع چپاټې-

چپاټه:(چُ-پا-ټه)اسم- واحد- مؤنث- چپټه- حمله-

چپاټی:(چَ-پا-ټی)اسم- مؤنث- ټوقې- ملنډې -ټوقې ټقالې- مسخرې- وشتې- ټوقې ټکالې- ټوکې- (کول/کېدل مصدرونه)-

چپالی:(چهٔ-پا-لی)اسم- واحد- مؤنث- وبا-

چپاړ:(چه-پاړ)اسم- (۱)تباهی- لوټ مار- يرغل- تېزه حمله- چاپه- چپه- دَ حملې پهٔ وخت کښې تېز تګ- ناڅاپه حمله- (۲)بربار- (۳)برګ اَس- بېبور اَس- هغه اَس چې پټې پټې او برګ بروګ وی- (اچول/ کول/ کېدل مصدرونه)-

چپاړول:(چَ-پا-ول)اسم- مذکر- مخکښيني دسته- وړومبی دسته- دَ فوځ دَ مخې دسته- مخکښينے ټولے- دَ سر ټولے- پهٔ فوځ کښې هغه ټولے چې دَ نورو لښکرو نه مخکښې روان وی-

چپاول:(چَ-پا-ول)اسم- مذکر- لوټ- تالان- تاړاک-

چپاوول:(چَ-پا-وه-وَل)مصدرِ متعدی- تالا کول- لوټ کول- تالا ترغه کول- غارت کول- چورول- يرغل کول- تالا ترغه اچول- چپاړ کول-

چپاوون:(چَ-پا-وه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چپاوول-

چپاوونګ:(چَ-پاوه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپاوول-

چپاوونه:(چَ-پاوه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چپاوول-

چپاوونکے:(چَ-پا-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چپاوونکی- مؤنث چپاوونکې- وګورئ چپاوول-

چپاووهٔ:(چَ-پا-وه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپاوول-

چپاوی:(چَ-پا-وی)اسمِ صفت- چپاړ کونکے- لوټ مار کونکے- تالا کونکے- غارت کونکے- لوټونکے- تالا ترغه کونکے- تالانی- يرغل کونکے- تاراجونکے- چورونکے- (۲)ګړی خيال- غېر مستقل مزاجه- (۳)تُند- تېز- چابک- (۴)دَ چپاړ- (۵)سرزورے او سرټمبه-

چپاوېدل:(چَ-پا-وې-دَل)مصدرِ لازم- تالا کېدل- لوټ کېدل- تالا ترغه کېدل- لوټېدل- تاراجېدل- چور کېدل- تالا کېدل- چورېدل-

چپاوېدن:(چَ-پا-وې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چپاوېدل-

چپاوېدنګ:(چَ-پا-وې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپاوېدل-

چپاوېدنه:(چَ-پا-وې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چپاوېدل-

چپاوېدونکے:(چَ-پا-وې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چپاوېدونکی- مؤنث چپاوېدونکې- وګورئ چپاوېدل-

چپاوېدهٔ:(چَ-پا-وې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چپاوېدل-

چپايْ:(چُ-پايْ)اسم- واحد- مؤنث- تابع مهمل- وګورئ چپه چپايْ-

چپتره:(چَ-پت-ره)اسم- واحد- مؤنث- چوتره- يو بوټے چې دَ ساګ پهٔ شان پخولے شی- جمع چپترې- نباتاتی نوم سټرس ګرېنډس اېل اسبک- (CITRUS GRANDIS 'L.' OSBCCK)-

چپتری:(چَ-پت-ری)اسم- مؤنث- دَ شفتلو پهٔ شان يو قسم شينکے بوټے-

چپتوب ۱:(چُپ-تُوب)اسم- مذکر- چوپتيا- چوپوالے- چپوالے- خاموشی-

چوپیا- چپتیا- قلاری- قلاره قلاری- غلے والے-

چپتوب ۲:(چَپ-توب)اسم- مذکر- (۱)مخالف والے- مخالفت- ضدیت- ضدوالے- (۲)کوږوالے- (۳)بې لارې توب- ګمراه توب- دَ مترقی عقیدې لرنه-

چپتیا:(چُپ-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ چپتوب ۱-

چپتیا:(چَپ-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ چپتوب ۲-

چپټ:(چ-پټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)اشر- بسکر- بلندره- پکره- بکاره- تړ- بېکار- مردجوی-

چپټ:(چ-پټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غټ، تکړه او صحت مند ملک- چپرغټه- تندرست سړے- (۲)څرګند- ښکاره- معلوم- چپټه- (۳)سپین- صادق- (۴)تباه- تالا- برباد-

چپټ:(چهٔ-پټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مسخراچی- ټوقمار- ټوکی- ټوقی- دوړه مار- دوړې مار- مسخرې کونکے- ملنډی- (۲)کربېدونکے- قرتو- قرتن- غورتن- جمع چپټی/چپټیان- مؤنث چپټه-

چپټه:(چ-په-ټه)اسم- مؤنث- چوپټه- مغه لرګے چې دَ تیرو په دېوال کښې دَ څو رَدو لګولو نه پس دَ دېوال او دَ اوږدو لرګو دَ ټینګولو او مضبوطولو په غرض لګولے شی-

چپټه:(چ-په-ټه)اسم- مؤنث- حمله- مځه- چاپه-

چپ چاپ:(چپ-چاپ)اسم صوت- دَ ښکلولو اواز- چړپ چړوپ- ټپ-

چپ چاپ:(چُپ-چاپ)صفت- قلار- خاموش- غلے- دم بخود- دم په خود- ارام- په پټه خُله-

چپ چاپېره:(چپ-چا-پې-ره)صفت- چاپېره- چارچاپېره- خواؤشا- ګېر چاپېره- تاؤراتاؤ- یو خوا بل خوا- ګردا ګرد- چاپ چاپېره- چورچوپېره- چاپېر-دورادور-

چپ چله:(چپ-چهٔ-له)اسم- مؤنث- (۱)چتره- چکره- (۲)ښوئېدونکې- (م- فارسی)-

چپ چوپ:(چپ-چُوپ)صفت- مذکر- مات ګډ- ټوټې ټوټې- چپ راچپ-

چپ چور:(چپ-چُور)اسم صفت- (۱)چورئ چورې- ټوټې ټوټې- ربز مربز- چرچور- ذرې ذرې- مات شوے- (۲)لوټ- تالا ترغه-

چپ دپ:(چپ-دَپ)صفت- مذکر- چپ چاپ- خاموش-

چپر:(چ-پر)اسم- واحد- مذکر- (۱) زرے- قاصد- خرے- خبری- استاذے- رہبار- پیغام وړونکے- (۲)تېز او ګړندے تلونکے- چابک-

چپر:(چ-پر)اسم- واحد- مذکر- څپری- خاله- چوپړی- کوډی- ساله- سوله- څپر- جونګړه- چومپړی- څونه- دَ وښو او پتری نه جوړ شوے دالان- دَ لوخو او کیانو کچه جونګړه-

چپراس:(چَپ-راس)اسم- واحد- مذکر- (۱)مغه دَ اُسپنې پیچی پټی چې دَ چوکاټ او دروازې تر مینځ لګولے شی او دَ دې په ذریعه دروازه لرې کولے او بندولے شی- قبضه- (۲)ښے او ګس (کیڼ)- (۳)دَسینې دَ پاسه لګېدلې مغه دَ اُسپنې ټکړه چې خان پرې دَ دشمن دَ حملې نه بچ ساتلے شی-

چپراس:(چپ-راس)اسم- واحد- مذکر- دَ چپراسی توب یا اردلی توب تمغه چې په کمربند کښې لګېدلې وی-

چپراسی:(چپ-را-سی)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چپړاسی-

چپرتاخ:(چ-پر-تاخ)اسم- چپرتاخ- یو کنخل-

چپرغټ:(چ-پر-غټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مضبوط- تیار- څورب- څُرب- چاغ- غټ- ساتلے- چروب- (۲)چاغ سړے- روغ ملک- (۳)کوکر-

چپرکټ:(چ-پر-کټ)اسم- واحد- مذکر- څپرکټ- دَ نوارو کټ- دَ پټو کټ- جمع چپرکټونه-

چپرکے:(چ-پر-کے)اسم- مذکر- وګورئ چپرکے-

چپرکے:(چ-پر-کے)اسم- مذکر- څپلانګه- څپلی- وړه څانګه- دَ وَنې نه را پربکړے شوې وړه څانګه-

چپره:(چپ-ره)اسم- مؤنث- دَ خرمنې دَ پاکولو لوئ رمبے-

چپړے:(چپ-ړے)اسم- واحد- مذکر- چپړے- وړوکے ډنډ- وړوکے تالاؤ- ورکوټے حوض-

چپړے:(چپ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چپه-

چپړ:(چ-پړ)صفت- مذکر- (۱)چپلیت- هوار- پلن- (۲)چیت پیت- بیخی اپریټ چپریت- (۲)خپړ- دَ پښې تلے- دَ پښې ورغومے- (۴)غټ او څُرب (څاروے)- څورب- چاغ- شلنډ- ساتلے-

چپراخه:(چپ-را-خه)اسم- مؤنث- چاپېره- چپلاخه- څپېره- تټُوره- چپراکه- څپلاخه- څاپېره- څپره- چاپراخه-

چپراستوب:(چپ-راس-توب)اسم- مذکر- دَ چپراسی کار-

چپراسی:(چَپ-را-سی)اسم- واحد- مذکر- خدمتګار- پیاده- چپراسی- خادم- ملازم- امربر- مغه نوکر (سرکاری یا غیر سرکاری) چې دَ دفتر کار کوی- اردلی-

چپراکه:(چَپ-را-که)اسم- مؤنث- وګورئ چپراخه-

چپربخ:(چ-پر-بخ)اسم- مذکر- وګورئ چپرتاخ-

چپرپوندے:(چ-پر-پون-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- بې کاره سړے-

چپرتاخ:(چ-پر-تاخ)اسم- مذکر- چیندرو- چندرو- چپربخ- چفی- چیندری- موخی- چپردخ- جنت او دوزخ- چیتی- تمبی- دَ ماشومانو یو قسم لوبه (۲)دَ زنانو اندام نهانی (تحقیراً)- چپرتاخ-

چپردخ:(چهٔ-پر-دخ)اسم- مذکر- وګورئ چپرتاخ-

چپرلاسے:(چ-پر-لا-سے)اسم صفت- واحد- مذکر- خرچی-

چپروس:(چپ-روس)اسم صفت- واحد- مذکر- خوشامندګر- خوشامندے- غوړه مال- چاپلوس- ټملق- چاکلېټی-

چپروسی:(چپ-رو-سی)اسم- مؤنث- خوشامندی- بوټ پاکی- ټملق توب- چاپروسی- چاپلوسی- غوړه مالی-

چپړول:(چپ-ړ-ول)مصدر متعدی- وګورئ پېتول-

چپړی:(چپ-ړی)اسم صفت- مؤنث- چپړه- مانده او خواره غوښه- مانده او ړنګره غوښه- پیپړک- پپېړه-

چپړیت:(چپ-ړیت)اسم- مذکر- یو قسم کارتوس- چپړیت کارتوس- جن جن-

چپړیتول:(چپ-ړی-ته-ول)مصدر متعدی- چپلیتول- چیټې کول- کشیمنډل- زور ورکول- چخړی کول- چیتول- چخنی کول- یو څیز لـه دومره زور ورکول چې شکل ئې وران او چیت پیت شي-

چپړیتون:(چپ-ړی-ته- ون)حاصل مصدر- وګورئ چپړیتول-

چپړیتونکے:(چپ-ړی-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چپړیتول-

چپړیتونګ:(چپ-ړی-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چپړیتول-

چپړیتونه:(چپ-ړی-ته-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چپړیتول-

چپړیتوۀ:(چپ-ړی-ته-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چپړیتول-

چپړیغ:(چپ-ړیغ)صفت- مذکر- چیت پیت-

چپړۍ:(چ-په-ړۍ)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ چپلۍ-

چپړی چپړو:(چپ-ړی-چپ-ړو)اسم- واحد- مؤنث- لټه او سسته ښځه- ناراسته ښځه- سسته ښځه- سپاړه ښځه-

چپړے:(چپ-ړے)اسم- واحد- مذکر- چپن- چوپړن-

چپق:(چ-پق)اسم- الوزونه- راکښنه-

چپک:(چ-پک)اسم صفت- واحد- مذکر- انښتے- نښتے-

چپک:(چ-پک)اسم صفت- واحد- مذکر- چپ سترګے- د کرو سترګو خاوند- چپے- کانړے- کاڼه- بینګا- عین و غین- چپا- قپا- چنګر- چنر- چقړ- چکړ- چخړ- جمع چپکی/چپکیان-

چپک:(چ-پک)اسم- واحد- مذکر- چپیک- باز- د ځړې ماده- یو قسم ښکاری مارغۀ-

چپکتوب:(چ-پک-توب)اسم- مذکر- چپکتیا- د سترګو کوږوالے- د سترګو چپوالے- دسترګو کږوالے- د سترګو بینګوالے-

چپک سترګے:(چ-پک-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې سترګې ئې چپې وی- چپے-

چپکتیا:(چ-پک-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ چپکتوب-

چپکو:(چ-پ-کو)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې زیات کار په کس لاس کوی- کیڼ لاسے- چپے- چپ لاسے- کسے- کس لاسے- کس متے-

چپکه:(چ-پۀ-که)اسم- مؤنث- څپیاکه- چاپکه- تاپی-

چپکه:(چپ-که)اسم- مؤنث- بوسه- مچه- چپی- پپه- کوکی-

چپکې:(چ-پۀ-کې)اسم صفت- مؤنث- (۱)کږې وږې سترګې - (۲)هغه سترګې چې پکښې ګل وی-

چپل:(چ-پل)اسم صفت- واحد-مذکر- خیرن- خچن- ګنده- (فارسی)-

چپل:(چه-پل)اسم- واحد- مؤنث- چپلکه- کیړی- څپلکه- سرپائی- چوستکه- چپاتی- چپاته- یو قسم سپک پیزار-

چپلاخه:(چپ-لا-خه)اسم- مؤنث- وګورئ چپړاخه-

چپلاسی:(چپ-لا-سی)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چپړاسی-

چپلکه:(چپ-له-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چپل-

چپلیت:(چپ-لیت)صفت- مذکر- چپړ- چیټ پیټ- چخپیت- چپړیت- اوار- هوار-

چپلیتول:(چپ-لی-ته-ول)مصدر متعدی- چپړیتول- أوارول- چخپیتول- هوارول- چیتول- چیت پیت کول- چیت پیتول- چپړ کول-

چپلیتون:(چپ-لی-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ چپلیتول-

چپلیتونکے:(چپ-لی-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چپلیتول-

چپلیتونګ:(چپ-لی-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چپلیتول-

چپلیتونه:(چپ-لی-ته-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چپلیتول-

چپلیتوۀ:(چپ-لی-ته-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چپلیتول-

چپلیته:(چپ-لی-ته)اسم صفت- مؤنث- چپلیت- ډانډلې شوې- وهلې ټکولې- چیته پیته- اواره- هواره-

چپلیخول:(چپ-لی-خه-ول)مصدر متعدی- چیت پیت کول- چیت پیتول- چپړی کول-

چپلیخون:(چپ-لی-خه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چپلیخول-

چپلیخونکے:(چپ-لی-خه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چپلیخول-

چپلیخونګ:(چپ-لی-خه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چپلیخول-

چپلیخونه:(چپ-لی-خه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چپلیخول-

چپلیخوۀ:(چپ-لی-خه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چپلیخول-

چپلۍ:(چ-په-لۍ)اسم- جمع- مؤنث- واحد چپله- چپړۍ- چپل- چپړاقې- چې صرف تلے وی او د پاسه پرې تسمې یا پیاړمې شان اړولی وی او د ګرت خاۍ پکښې وی-

چپلی:(چپ-لی)اسم- مؤنث- وګورئ څپلی-

چپن:(چ-پن)اسم- واحد- مذکر- چپتیا- خاموشی-

چپن:(چ-پن)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ چپنه- (۲)قادرې-

چپن:(چو-پن)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې سترګې ئې چونی وی- شوړ- چوپړن- زوبن-

چپنړه:(چ-پن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د لرګی کاسه- د لرګی کنډولے- ټوتې- جمع چپنړې-

چپنګ:(چ-پ-نګ)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو چوغه- د وړو چپنه- وړه څپنه- د کوچنیانو څپنه-

چپن وزمه پوښ:(چ-پن-وز-مه-پوښ)اسم مرکب- کوسے- کوڅړے- لۀ کراستې څخه جوړ لستونې لرونکے پوښ چې د شوټې یا چوغې په شان پوش لری- (افغانستان)-

چپنه:(چ-پۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- چوغه- چپن- خلکه- قبا- چوپانه- شوقه- خرقه- جوغه- خلقه- شوکه-

چپنه:(چ-پۀ-نه)صفت- مؤنث- چپلیته- چپړیته- اواره- هواره- چخپیته-

چیته- چیته پیته-

چپو:(چَ-پَو)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ بېړۍ چپه- سینګاوړ- دَ کشتۍ چلولو چپه- دَ بېړۍ چلولو څپه- ړنګرۍ- (۲)چپاؤ- تېرے- حمله-

چپوالے:(چَپ-وا-لے)اسم- مذکر- مخالفت- چپتیا- غلطي- تګي- چپتوب-

چپوالے:(چُپ-وا-لے)اسم- مذکر- چوپتیا- خاموشي- چپتیا- غلے کېدنه- قلارۍ- کراري- قراري-

چپوته:(چَ-پَو-ته)اسم- مؤنث- څپېړه- تتوړه-

چپ و چُور:(چَپ- وَ- چور)صفت- وګورئ چپ چور-

چپ و راس:(چَپ-وَ-راس)اسم مرکب- ښے او ګس- ښے او کيڼ-

چپوښ:(چَ-پَوښ)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ اوږدو لینګیو خاوند- ښانګور- لینګور- لینګیور- اوږد لینګے-

چپ وغړوپ:(چَپ-وَ-غَړُوپ)اسم صفت- واحد- مذکر- بیخي غلے- بیخي چپ- بالکل خاموش- ګرسره- چپ- غلے غلے- غلے پلے- بیخي خاموش-

چپول:(چَ-پول)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چنګر- کوږ سترګے- چپک سترګے- چپلغے- چغر- چپے- بېنګا- (۲)چوړے- پېړے- کجے- هغه څوک چې پښې يې کږې وي-

چپول:(چَ-په-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)غلے کول- چوپول- قلارول- قرارول- غلیول-

چپول:(چَ-په-وَل)مصدرِ متعدي- ښکلول- پپه اخستل- مچه اخستل- کوکۍ اخستل- مچول- چپی کول- چومل-

چپول:(چَ-په-وَل)مصدرِ متعدي- بچ کول- اړول- دَ ناڅاپي جنجاله خلاصول- دَ مخې لرې کول- دَ نقصان نه بچ کول-

چپول:(چَ-په-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)چوپل- چړپول- شړپول- پهٔ چپاري او شړپاري سره خوړل یا څټل- (۲)لهٔ شونډو اواز وېستل- (۳)کږول- مات ګډ کول- پلنول- خورول- ماتول- نچوړي کول-

چپولے:(چَ-په-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چپول-

چپولے:(چَ-په-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چپول-

چپولے:(چَ-په-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چپول-

چپون:(چَ-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپون:(چَ-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپون:(چَ-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپون:(چَ-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونکے:(چَ-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چپول-

چپونکے:(چَ-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چپول-

چپونکے:(چَ-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چپول-

چپونکے:(چَ-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چپول-

چپونګ:(چَ-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونګ:(چَ-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونګ:(چَ-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونګ:(چَ-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونه:(چَ-په-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونه:(چَ-په-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونه:(چَ-په-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونه:(چَ-په-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپونے:(چَ-پَو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ صابون توکرے- دَ صابون توتنکے- دَ صابون پوچک- دَ صابون خروکے- دَ صابون پوچکه-

چپونړے(چَ-پَو-نړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دسترخوان- کوندرے- (۲)وړوکے ټیکرے- وړوکے زړوکے- چپونړے- چپوټکے- وړوکے څپونړے- دَ قلپي یا روټۍ څپونے- کندور-

چپوهٔ:(چَ-په-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپوهٔ:(چَ-په-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپوهٔ:(چَ-په-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپوهٔ:(چَ-په-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چپول-

چپه:(چه-په)اسم- واحد- مؤنث- کوکۍ- ګوکۍ- مچه- مچو- مچکو- مچکه- چومي- بوسه- چپي- خلګۍ- چپي- چپۍ- پپه- جمع چپې-

چپه:(چه-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حرکت- ټېله- موج- لهر- چپاؤ- څپه- غولۍ- ځانګېدهٔ- (۲)عصابي حمله- دَ ناروغۍ حمله- پیریان راتلنه- میرګي- غوټه- (۳)شېبه- لږ ساعت- (۴)دَ کوټې دَ موري لرګي- چچه- (۵)اپوټه- پړمخ- سرولاندې- نسکور- (۶)هغه دَ وُني غټه او ګوره ځانګه چې غوایانو پسې تړلے شي او دروزه پرې بوس کولے شي- چاپه منړه- منړو- ړک څپرے- (۷)هغه امدادي لرګے چې سر يې دَ بېلچې پهٔ شان وي او سیند کښې پرې کشتۍ مخ پهٔ وړاندې بوتلے شي- سینګاوړ- تامبېړے- تیک- دَ بېړۍ راشپېل- (۸)دَ غنو دلۍ- چاپه- دَ غنو پولۍ- جمع چپې

چپه:(چه-په)اسم- مؤنث- دَ څلورو ګتو اندازه- څپک- څپق- څپکه-

چپه:(چه-په)اسم- مؤنث- (۱)مخالفت- دُښمني- عداوت- (۲)ناراستي- (۳)بدبختي-

چپه پاتا:(چَ-په-پا-تا)اسم- مؤنث- (۱)شړنه- یو پخوانے دستور چې هغې کښې به خراب سړے یا کورنۍ لهٔ کلي یا علاقې نه شړلے شول-

چپه چپايْ:(چَ-په-چَ-پايْ)اسم- مؤنث- چپه چپیا- خاموشي- قلارۍ- ارامه ارامي- چوپه چوپتیا- چوپه چپیا- کراره کراري- بالکل خاموشي- بېخي خاموشي- خفګان- ژوره خاموشي - خفګان او ویره ترهه خورېدنه-

چپه چپه:(چَ-په-چَ-په)اسم مرکب- هر ځایْ- ګټ ګټ-

چپه چپیا:(چهٔ-په-چَپ-یا)اسم- مؤنث- وګورئ چپه چپائي-

چپه کښ:(چَ-په-کښ)اسم- واحد- مذکر- مانګے- ملاح- دَ کشتۍ چلونکے-

چپه لار:(چه-په-لار)اسم مرکب- واحد- مؤنث- (۱)غلطه لار- ورانه او کږه لار- (۲)دَ وېښتو کږه لار- کږه شېخه-

ئ" (څې-رل)، "ې"(هې-ره-وَل)، "ے"(تن-دے)، "ي"(پېا-لې)، تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

چپی:(چَ-پی)اسم- واحد- مؤنث- وګوریٔ چپه ۱-

چپیا:(چُپ-یا)اسم- مؤنث- خاموشي- چپه چپاۍ

چپیت:(چ-پیت)اسم- واحد- مذکر- چپاتے- چپاتی- چپاتۍ- څوکۍ-

چپیتول:(چَ-پی-ته-وَل)مصدرِ متعدی- پلنول- خورول- اوارول- هوارول-

چپیتون:(چَ-پی-ته-وَن)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپیتول-

چپیتونکے:(چَ-پی-ته-وُن-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوریٔ چپیتول-

چپیتونګ:(چَ-پی-ته-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپیتول-

چپیتونه:(چَ-پی-ته-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپیتول-

چپینه:(چ-پی-نه)اسم- مؤنث- چپن- چپنه-

چپې:(چ-پې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)اوتې بوتې- ابدالې- پهٔ سخته تبه کښې اوتې بوتې ونیئه- (۲)اولتېه- سرچپه- اړولې- اپوتېه-

چپې چپې:(چ-پې-چ-پې)اسم مرکب- پهٔ چپو چپو- لړی لړی- اوښان اوښان-

چپېدل:(چَ-پې-دَل)مصدرِ لازم- غلے کېدل- قرارېدل- کرارېدل- ارامېدل- چپ کېدل- خاموشه کېدل-

چپېدل:(چَ-پې-دَل)مصدرِ لازم- لېونی لیونی خبرې کول- کنځل کول- اوتې بوتې ونېل-

چپېدل:(چَ-پې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)ګوښه کېدل- څنګ ته کېدل- یوې پړې ته کېدل- ځان رغړول- دَ څهٔ مصیبت نه ځان خلاصول-

چپېدل:(چَ-پې-دَل)مصدر لازم- ماتېدل- خرابېدل- پلنېدل- کوږېدل-

چپېدن:(چَ-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدن:(چَ-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدن:(چَ-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدنګ:(چَ-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدنګ:(چَ-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدنګ:(چَ-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدنه:(چَ-پې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدنه:(چَ-پې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدنه:(چَ-پې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدونکے:(چَ-پې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدونکے:(چَ-پې-دُون-کے) اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدونکے:(چَ-پې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوریٔ چپېدل-

چپېدهٔ:(چَ-پې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوریٔ چپېدل-

چپېدهٔ:(چَ-پې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوریٔ چپېدل-

چپېدهٔ:(چَ-پې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چپېدل-

چپېړه:(چ-پې-ړه)اسم- واحد- مؤنث- څپېړه- تتوړه-

چپۍ:(چَ-پۍ)اسم- واحد- مؤنث- کوک ،- کوکی پپه- خُلکۍ- مچه- خله اخستنه- پهٔ مخ ښکونه، چپونه- چپه- چپی- بوسه- چومې-

چپے:(چ-پے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چپ سترګے- چغر- چنګر- ګوږ سترګے- ببنګا- (۲)ګسے- کیڼ لاسے- (۳)هغه غوانے چې ښکرونه یې شا ته کاږهٔ وی- (۴)هغه غوانے چې ښکرونه یې مات وی-

چپے:(چَ-پے)اسم- واحد- مذکر- (۱)داغ- خاپ- ټاپے- تاپے- خاپے- چاپے- (۲)نښه نښانه-

چت:(چَت)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټیټ- غُنډکے- لنډکے- چدرے- ټیټکے- چیت- (۲)تش- پوچ- خالي- (کارتوس)- (۳)نالائق- نالائقه- (۴)تشوکے- کنځل مار- (۵- اسم صوت)دَ چتی اواز-

چت:(چَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کوټې پوښلې برخه- دَ کوټې دَ غولی مقابل طرف- دَ پټ شوی بام هغه برخه چې دَ کوټې خوا ته وی- دَ کوټې هغه برخه چې دېوالونه او فرش یې پټ کړے وی- کاښ- سقف- (۲)پوړ- منزل-

چت:(چَت)اسم- مؤنث- (۱)بېهُوده خبرې- (۱)چتې- هوائی-

چتاړ:(چَ-تاړ)صفت- واحد- مذکر- وران ویجاړ- لتاړ- ګډوډ- خراب-

چت پت:(چَت-پَت)صفت- دَ پښو لاندې- چخښی- زورلے- مښلے شوے- پائېمال-

چت پوزے:(چَت-پو-زے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ چتې پوزې خاوند-

چت چت:(چَت-چت)اسم مرکب- ناقلاری- ورانکاری- ډېر ټټېدنه- ډېر ونېدنه- دَ چتی پهٔ شان بې واره بې واره دانګنه او دَ چت چت اواز ایستنه- ډېره ناقلاری کونه- پهٔ یو ځاۍ نهٔ ټیکاوېدنه- ډېرې خبرې کونه-

چتر:(چَ-تَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)چترکے- پتکے- (۲)چتے- یوه وړه خړرنګې مرغی- (۳)کمزورے- ضعیف- بې قوته- بې طاقته-

چتر:(چ-تَر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه اوښ چې عمر یې څلورو کالو ته رسېدلے وی- څلور غاښے اوښ- کواټ- (۲)بې وېښتو سر- ګنجے- کټے سر- (۳)دَ زخم نښه- (۴)بلی- څپر- (۵)پرېکړې زلفې چې پهٔ تندی را ځانګی- (۶- صفت)پاک- صفا سوتره- پاکیزه- وللے-

چتر:(چَ-تَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه لویه چتری چې دَ بادشاهانو، سردارنو او سادوانو پهٔ سر به نیوے شوه- سیورن- (۲) لویه چتری- لوۍ سائیوان- لوۍ سایه بان- (۲)چجه- جمع چترونه-

چتاۍ:(چَت-راۍ)اسم-مؤنث- اونچائی- وُچتوالے- بلندی-

چتر چتر:(چَ-تَر-چَ-تَر)اسم مرکب- چتری نما پېکے- اوربل-

چترک:(چت-رک)اسم- مذکر- دَ ببېیو یوه لوبه- دَسپېښتو لوبه- دَ سپېښتو لوبه- درې پلے- درې پولے-

چترکے:(چ-تر-کے)اسم- واحد- مذکر- وګوریٔ چتے-

چترکے:(چَت-ره-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- لېشتکے- لوېشتکے- لېشتنګ- لوېشتنګ- لنډے- ټیټکے- کونډکے- ټېمرکے- ټېمرے- دَ ورکوټی قد خاوند-

چترنګ:(چِت-رنګ)اسم- دَ سندرو يو وزن يا سُر-

چتره:(چِت-ره)اسم- واحد- مؤنث- څلور کلنې اوښه-

چتره:(چِت-ره)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه شين يا خړ بخن کونتر چې پرې تُور تُور ټاکي وی- (۲)وُګوري چتے-

چتره لار:(چِت-ره-لاړ)اسم مرکب- مؤنث- څرګنده لار- معلومه لاره- عامه لار- پاکه لار- صافه لار- چترۍ-

چترۍ:(چِت-رۍ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ګل- چترۍ پک-

چترېدل:(چِت-رې-دِل)مصدر- پهٔ چاړهٔ ټکړې کول-

چترې چترې:(چِت-رې-چِت-رې)صفت- مرکب- ټکړې ټکړې-

چترۍ:(چِت-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)لهٔ بارانهٔ او دَ نمر لهٔ ګرمۍ دَ سر دَ بچ کولو دَ پاره وړوکے او لاسکے لرونکے سائبان- (۲)دَ کپړې يوه آله چې پهٔ هوا کښې لهٔ جهاز نه دَ رادنګلو او زمکې ته دَ راکوزېدو دَ پاره پکارولے شي- پېراشوټ- (ش- فارسی- هندی)-

چترۍ:(چِت-رۍ)اسم صفت- مؤنث- (۱)پاکه لار- (۲)داغي- داغداره- (۳)هغه ښځه چې پهٔ بدن يُ دَ زخم داغ وی-

چتړ:(چ-تړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه ټاپه يا نښه چې پهٔ کپړه لګولے کېږی- (۲)يو قسم لکيرداره کپړه-

چتکے:(چ-ته-کے)اسم تصغير- واحد- مذکر- (۱)ورکوټے چت- نيم ورے- وړوکے چت- (۲)لهٔ بارانهٔ او دَ نمر لهٔ ګرمۍ دَ ټانګې (بګی) محفوظ ساتلو لوئ سائبان- ټاپ-

چتکے:(چِت-کے)اسم- واحد- مذکر- چړندګ- چتر- چترکے- پتکے- چتے- چترو- چندولے- چيره- چتی-

چتکے چتکے:(چِت-کے-چِت-کے)صفت- مرکب- لږ لږ- کم کم- ټکے ټکے- خال خال-

چتله:(چِت-له)صفت- (۱)مښلے شوے- سُولېدلے- (۲)اوړهٔ شوے- مېده شوے-

چتم:(چهٔ-تَم)اسم- واحد- مذکر- مرند- دَ خټې او دَ لښتو نه جوړ بند- (افغانستان)-

چتنۍ:(چِت-نۍ)اسم- مؤنث- وُګوري چکنۍ-

چتوړې:(چ-تو-ړې)اسم- دَ اوښانو غټ غټ قدمونه اخستنه يا پهٔ ټوپونو تلنه-

چتول:(چ-ته-وَل)مصدر متعدی- چيتی کول- چيتول- چيت پيت کول- پيتول- چقول-

چته:(چهٔ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پام- فکر- سوچ- اند- خيال- قياس- حواس- (۲)ځان ساتنه- (۳)حد- اندازه- انسانی او اخلاقی حدود- (۴)ګبين- دَ ګبين وړے- دَ ګبين څپياکه- دَ مچو چک- چک- شکرګنے- ړومبکے- دَ مچو ټمبکه- (۵)رنګ- څېره- (۶)سرپوښه بازار- سرپټے بازار- پوښلے بازار-

چتی:(چ-تي)صفت- خوشے- بې کاره- بې ښې-

چتی برو:(چ-تي-بَرو)صفت- بې کاره- بې خوده- بېهوده او ناکاره- پارچاو-

چتيز:(چ-تيز)اسم صفت- واحد- مذکر- منزل لرونکے- پوړيز- چُتونه چُتونه- ګڼ چتونه- هغه منزل چې ګڼ چتونه لری-

چتيس:(چ-تيس)اسم صفت- واحد- مذکر- چالاک-

چُتی:(چُ-تي)اسم- چتی- وصل- پېوست-

چُتی:(چهٔ-تي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)پړی- ټاپری- موړه- پېه- مچان- درے- دونکاچه- دَ لرګيو وُچته دونکاچه- مچان يا ټاپری چې پهٔ کوټه کښې دَ سامان او لوښو لرګيو کېښودو دَ پاره جوړه کړے شوې وی- (۲)پهٔ ټرک کښې دَ ډرائېور دَ سيټ نه بره ځائ چې دَ ټرک آلې پکښې ايښوے شی-

چتې:(چهٔ-تې)اسم- مؤنث- څنې-

چتے:(چهٔ-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- چيت پيت- پائمال- چخنی-

چتے:(چ-تے)اسم- واحد- مذکر- چوتے- لنګ- لونګ- جانګے- نېکر- سلدراج-

چُتے:(چُ-تے)اسم- واحد- مذکر- دَ دروازې چوڼ- لخک- لخه کے- لپخکے- چوړ- چول- پونکے-

چتے:(چهٔ-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)يوه وړه خړ رنګې مرغی- چتر- چترکی- چتکے- چيتکے- چورندګ- پيتکے- پتکے- پېک- چترکے- چندروکے- چرندګ- ترورے- ټراک- چندولے- چترو- (۲)وړوکے- بې حقيقته- ناتوانه- ناڅيزه- کمزورے- سپک-

چتے پتے:(چهٔ-تے-پهٔ-تے) اسم صفت- واحد- مذکر- چيتے پيتے-

چټ:(چټ)اسم- واحد- مذکر- ډټ-

چټ:(چټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غريب- ملنګ- خوار- (۲)پېره خرنبلے- ګيره کل کړے- (۳)تباه- برباد- نابود- (۴)لونړ- کاسير- بدعمله- بې کاره- تپ- (۵)تيار- چټک- (۶)خلاص شوے کار- پائ ته رسېدلے کار- (۷)بيخي- بالکل- ګرسره- تمام-

چټ:(چِټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سپي دَ خوراک لوښے- کودی- کپړ- (۲)هغه لوښے چې دَ لوښو وينځلو پهٔ وخت کښې ناولې اُبهٔ پکښې اچولے شی- (۳)جره سړے- بې ښځې سړے- (۴)مست او ازاد ځوان-

چټاق:(چ-ټاق)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)شوخ- شيطان- حرامزاده- تېز- بې لحاظه- بې پروا- (۲)چست چالاک-

چټاک:(چ-ټاک)اسم- واحد- مذکر- (۱)چيټاکی- دَ پاؤ څلورمه برخه- چيټاک- چيټاکے- (۲)کم څيز- لږ شے- لږ څيز-

چټاکی:(چ-ټا-کی)اسم- مؤنث- وُګوري چټاک-

چټاکے:(چ-ټا-کے)اسم- مذکر- وُګوري چټاک-

چټان:(چ-ټان)اسم- واحد- مذکر- هغه کانړے چې اور پرې بلولے شی-

چڅاوټ:(چهٔ-ټا-وټ)اسم- واحد- مذکر- ناڅاپی ګوزار- ناڅاپی وار- ناخبره ګوزار-

چټانی:(چِ-ټا-نی)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوزے- ټاپ- پوزکے- انږرے- پیزے- وړوکے پېڅول- (۲)بنړل-

چټ پټ:(چټ-پټ)متعلق فعل- (۱)سمدستي- فوراً- سم دلاسه- ژر تر ژره- (۲)بېخي تباه شوے- برباد شوے- لهٔ منځه تللے- (۳)تمام شوے- خلاص شوے کار-

چټپټي:(چټ-په-ټي)متعلق فعل- (۱)سمدستي- فوراً- سم دلاسه- دَ واره سره- (۲ صفت)تیار- چمتو- اماده- (۳)هغه څوک چې پهٔ هر کار کښې اندېښنې او پهٔ زړهٔ کښې کرل ربېل نهٔ کوی- توکلي-

چټ صفا:(چټ-ص-فا)اسم مرکب- (۱)بېخي صفا- صفا سوتره- پاک ساک- صفا چټ- (۲)پاک صاف- بالکل صفا- سیده ساده-

چټک:(چِ-ټک)اسم صفت- واحد- مذکر- چست- چاق چوبند- چابک پلغت- زغرد- چسپانده- ارمتے- خپوسه- چست چالاک- ګړندے- تېز- متے- ګړندے- وندے-

چټک:(چِ-ټک)اسم- واحد- مذکر- دَ لوهارانو یو قسم اوزار- څټک- څټې-

چټک تسمه:(چِ-ټک-تس-مه)اسم- مؤنث- کمربند- دَ ملا تړلو تسمه- ملا تړونے- دَ ملا تړلو پټې- پېټی- دَ ملا تړلو لوپټه-

چټکتوب:(چِ-ټک-توب)اسم- مذکر- چستي- تېزی- چټکتیا- چابکي- چټکي- چالاکي- چابکتوب- چوبکي- چټکوالے-

چټکتیا:(چِ-ټک-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ چټکتوب-

چټکنے:(چِ-ټک-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چټخنے- بولټ- چیټکنے- دَ زرهٔ زنځیر- زلفي- موټې- موټے- (۲)دَ توري موټے یا موټې- زلنی-

چټکوالے:(چِ-ټک-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ چټکتوب-

چټکول:(چِ-ټ-که-ول)مصدر متعدی- چالاکول- چابکول- تېزول- چستول- جلتول- چوبکول-

چټکون:(چِ-ټ-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ چټکول-

چټکونکے:(چِ-ټ-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چټکول-

چټکونګ:(چِ-ټ-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چټکول-

چټکونه:(چِ-ټ-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چټکول-

چټکوهٔ:(چِ-ټ-که-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چټکول-

چټکه:(چټ-که)اسم- مؤنث- دَ الوان کپړه- دسور ټوکی ټوټه- سره کپړه-

چټکی:(چټ-کی)اسم- مؤنث- وګورئ ترینګلي-

چټکی:(چِ-ټه-کی)اسم- مؤنث- وګورئ چټکول-

چټکېدل:(چِ-ټ-کې-دل)مصدر لازم- جلتېدل- تندېدل- تېزېدل- چاقېدل- چابکېدل-

چټکېدن:(چِ-ټ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چټکېدل-

چټکېدنګ:(چِ-ټ-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چټکېدل-

چټکېدنه:(چِ-ټ-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چټکېدل-

چټکېدونکے:(چِ-ټ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چټکېدل-

چټکېدهٔ:(چِ-ټ-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چټکېدل-

چټکی:(چټ-کی)اسم- مؤنث- (۱)څټکه- (۲)چوټې- چوټکه- ځری- بوټکه- چټکه- دَ منډوانو د سر وړهٔ وېښتهٔ- غټه کونځې- غټه کمځې- (۳)سکونړکه- سکونږاره- نوکاره- (۴)چیچنه-

چټکے:(چټ-کے)اسم تصغیر- دَ چیټ اسم تصغیر- دَ یو ټوکی نوم-

چټکے:(چټ-کے)اسم- مذکر- ښکنځلې- کنځلې- کنځلې زیږې- زیاړې- ښکنځل- بده خُله خوخونه-

چټل:(چِ-ټل)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ککړ- ناولے- سخا- ناپاکه- مردار- خیرن- پلیت- ګنده- خوسا- سخا(۲)څټک- (۳)توک- چنګل- دَ ځېلمې- پهٔ غنډه- توک یا پهٔ یو ځایٔ خرڅون- دَ چوک او پرچون ضد- یک مشته- پهٔ یو ځایٔ- ټول-

چټلتوب:(چِ-ټل-توب)اسم- مذکر- (۱)ناولتوب- ناپاکي- ناولتیا- خیرن ژالے- مرداری- ګندګي- ککړوالے- ناپاک توب- خوساتوب- مردار توب- چټلتیا- چټلوالے- پلیتی- ګنده توب- چټلی- سخاتوب- (۲)پهٔ یو ځایٔ خرڅون- دَ ځېلمې خرڅون- یک مشته- پهٔ یو ځایٔ-

چټلتیا:(چِ-ټل-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ چټلتوب-

چټلوالے:(چِ-ټل-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ چټلتوب-

چټلول:(چِ-ټه-له-ول)مصدر متعدی- (۱)ککړول- ناولے کول- خیرنول- مردارول- (۲)دَ ځېلمې خرڅول-

چټلون:(چِ-ټه-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ چټلول-

چټلونکے:(چِ-ټه-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چټلول-

چټلونګ:(چِ-ټه-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چټلول-

چټلونه:(چِ-ټه-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چټلول-

چټلوهٔ:(چِ-ټه-له-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چټلول-

چټلی:(چِ-ټه-لی)اسم- مؤنث- ناپاکي- ناولتیا- مرداری- ګندګي- چټلتوب- ګنکی-

چټلېدل:(چِ-ټه-لې-دل)مصدر لازم- (۱) ناولے کېدل- ککړېدل- خیرنېدل- ګنده کېدل- مُرادرېدل- (۲)دَ ځېلمې خرڅېدل- پهٔ یو ځایٔ خرڅېدل-

چټلېدن:(چِ-ټه-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چټلېدل-

چټلېدنګ:(چِ-ټه-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چټلېدل-

چټلېدنه:(چِ-ټه-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چټلېدل-

چټلېدونکے:(چِ-ټه-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چټلېدونکي- مؤنث چټلېدونکې- وګورئ چټلېدل-

چټلېدهٔ:(چِ-ټه-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چټلېدل-

چټنی:(چټ-نی)اسم- مؤنث- چکنې- چکنی- چقنې- چټنی- هغه تروه، ترشه او ترسکونه خوراکه چې دَ ټماټرو، پودینې، شنې دنیا، اوړې مرچکی او

داسې نورو څیزونو نه جوړولے شي-

چټېي:(چټ-نېي)اسم- مؤنث- وګورئ چټني-

چټو(چ-ټو)اسم- واحد- مذکر- د لرګی لنګرې- بغرې- برغی-

چټو:(چ-ټو)اسم صفت- واحد- مذکر- لړو چټاؤ- چټولړو- لاړې څټے- مصرف- لړو څټو- لړو- فضول خرچه- هغه څوک چې بې ځایه او زیات خرچ کوی-

چټ وپټ:(چټ-و-پټ)صفت- پوپنا- میرات-

چټول:(چ-ټه-ول)مصدر لازم- (۱)تباه کول- لۀ ویخه وېستل- (۲)سر ته رسول- پوره کول- چټ کول-

چټولړو:(چ-ټو-له-ړو)اسم صفت- (۱)فضول خرچه- فضول خرڅه- فضول خرڅ- فضول خرچے- چټو- (۲)ګېډوړ- (۳)ناپاک- سخا-

چټون:(چ-ټه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چټول-

چټونکے:(چ-ټه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چټول-

چټونګ:(چ-ټه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چټول-

چټونه:(چ-ټه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چټول-

چټوۀ:(چ-ټه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چټول-

چټه:(چ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- ډېرے- دلۍ- ګواټه- پړه- امبار- د خښتو مربع- ډېرې خښتې پۀ یو خاص وزل او ترکیب لګونه- د خښتو یا کټو ډېرے-

چټه:(چ-ټه)اسم- مؤنث- (۱) سود کونه- سود خوری- (۲)یو قسم جواری-

چټه:(چ-ټه)اسم صفت- مؤنث- (۱)مسته او بې باکه ښځه- (۲)آزاده ښځه- رسېدلې او مسته پېغله- د پېغلې سره د صفت پۀ توګه راځی- لکه چټه پېغله-

چټه:(چ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د چرسو یا اپیمو وړه ټکره- هغه چرس یا اپیم چې ګول ګولی ترې جوړې کړے شي- (۲)د نلکې یا نچې پۀ ذریعه چرس څښنه- (۳)جنډوز- جمع چټې-

چټی:(چ-ټي)اسم- واحد- مؤنث- رخصت- اجازت- (۱)موقوفی- (۲)بې غمی-

چټی:(چ-ټي)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)فضول- اوباش- څشے-کوټه- مضر- ضرری- ضررناک- بې فائدې- بې کاره عبث- (۲)تروټه- تاوان- (۳)هیڅ بې هېڅه- (۴)اواره ګردی- قلاشي- آزادي- ابله ګردی-

چټی بړو:(چ-ټي-ب-ړو)اسم صفت- واحد- مذکر- بې معنی- چټی- څشے او فضول- اوباش سړے-

چټی رسان:(چي-ټي-ر-سان)اسم- واحد- مذکر- ډاکی- ډاکیه- ډاک وړونکے راوړونکے- پوسته رسان- خطونه وړونکے راوړونکے-

چټیات:(چټ-یات)اسم صفت- جمع- مذکر- فضولې، عبث، پوچې، او بې معنې خبرې- بې ځایه غږېدنه- اپلاتې- پرتې- ارتاویزې- ګزارې- خرافات- پوچ ګونی- سپکه خله خوخونه- واهیات- عبثیات- بې فائدې- بې کاره- فضولیات- (افغانستان)-

چټېدل:(چ-ټې-دل)مصدر لازم- (۱)تباه کېدل- بربادېدل- (۲)ختمېدل- سر ته رسېدل- پوره کېدل-

چټېدن:(چ-ټې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چټېدل-

چټېدنګ:(چ-ټې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چټېدل-

چټېدنه:(چ-ټې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چټېدل-

چټېدونکے:(چ-ټې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چټېدل-

چټېدۀ:(چ-ټې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چټېدل-

چټی:(چ-ټي)اسم- مؤنث- ګلدسته- د ګلونو ګېډۍ-

چټی:(چ-ټي)اسم- واحد- مؤنث- د زنانو څادر- پړونے- پوړے- زړوکے- ټیکرے-

چټی:(چي-ټي)اسم- واحد- مؤنث- خط- رقعه- رسید- حواله- نُسخه-

چټے:(چ-ټے)اسم- واحد- مذکر- چڼاشه- چڼیاشے- چڼېشے-

چج:(چج)اسم- واحد- مذکر- (۱)د دروزې، کیانو، تیلو یا بانس نه جوړه شوې د غلې د څپ وهلو آله- چاڼ- چڼونے- چج- څپڅپے- پروېزے- (۲)پښتی-

چج بواری:(چج-ب-وا-ری)اسم مرکب- صفائی- پاکونه- سوتره کونه- صفا کونه-

چج ږیره:(چج-ږی-ره)اسم- واحد- مؤنث- لویه، کټه او پلنه ږیره-

چج ږیرے:(چج-ږی-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- د سترې ږیرې څښتن- د اوږدې کټې او پلنې ږیرې خاوند-

چجک:(چ-جک)اسم- واحد- مذکر- د ټوپک لینډی- د ټوپک ماشه- (۱) د ټوپک کوړ- د ټوپک قولنګ- د ټوپک کولنګ-

چجکی:(چ-ج-کي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د پښتو سر- پښتی- اړخے- (۲)زړوکې چجه-

چجکے:(چ-جه-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د نچو او کیو نه اُبدلې پرده چې دروازو او کړکیو ته زوړندولے شي- چک- چېک- پرده- بیټر- دروے- پرده- (۲)هغه وړوکے څپر چې د کوټې د پاسه جوړ شوے وی- (۳)لټ- دام- پړکه- تلکه- د مرغیو یا د کبانو نیولو جال- (۴)وړوکے چج- (۵)د نل پۀ شان نېغ او نری لرګی چې د کوټیو او برنډیو پۀ لاړیو (لهریو) د چاټې پۀ ځای اچولے شي- جمع چجکی-

چجکر:(چج-کر)اسم صفت- واحد- مذکر- جج جوړونکے او خرڅرونکے- پروېزے جوړونکے- چج جوړونکے-

چجون:(چ-چه-ون)فعل- (۱)د غنموپېمانه کونه یاتلنه- (۲)څېر- (لوښے)-

چجوانی:(چج-وا-نی)اسم- مذکر- د غلې دانې د صفا کولو کار کسب-

چجه:(چ-جه)اسم- مؤنث- (۱)د چت هغه حصه چې د دېوال د حفاظت دپاره بهر وېستے شوې وی- د بام وزر بلی- (۲)د مار د سر وچت نیونه- (۳)د کبانو نیولو د لرګی دام- (۴)هغه لرګی چې د مات شوی هډوکی

کېر چاپېره لکولے شي- (۵)پښتی- (۲)شپول- (۷)غرور-

چچ:(چَچ)اسم- واحد- مذکر- چچ- دَ ځپ وهلو آله- چڼوونے- ځپ-
پروېزے- (۲)دَ مېزرو پېټارګے چې دانې او اوړهٔ پکښې اچولے شي-
(۳)تاپ- لويه ټوکرۍ چې ماستهٔ او پئ ورلاندې اېښوے شي-

چچا:(چَ-چا)اسم- واحد- مذکر- چاچا- ترهٔ- (م- هندی)-

چچارے:(چَ-چا-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چچاړے-

چچاړے:(چَ-چا-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ اُبو مېنځ کښې وُچه زمکه- ببله-
جزيره- ټاپو- جمع چچاړی-

چچخه:(چَ-چۀ-خه)اسم- واحد- مؤنث- تومنه- تومله- تېونه- نسل- نسيار-

چچړ:(چَ-چړ)اسم صفت- واحد- مذکر- بې شرمه او سپين سترګے سړے چې
مېځ بې مېځه بل پورې ځان نښلوی- جګړمارو- جګړمار- جګړالو- چيچړ-
چچړے-

چچړن:(چچ-ړن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چچن- هغه ځوک چې سترګې ئې
همېشه چخې کوی- چخن- ځوبن- چوخړ- چوخړن- چخړن- چخن- چيخن-
((۲)اُبړن- اُوبژن- نرے- چچړوبن- چړچوبن-

چچړوبن:(چَچ-ړو-بن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه انګولے (پخکړے)
چې شپه پرې تېره شوې وی- (۲)اُبړن- اُبلن- اُبژن- اُبزن- چيړچوبن-
(۳)چخن- چخړن-

چچړے:(چَچ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چچړ-

چچکے:(چَچ-کے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم وړوکے مارغهٔ- چتے-

چچګر:(چَچ-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- چچ جوړوونکے- پروېزے
خرځونکے- جمع چچګران-

چچل:(چَ-چل)مصدرِ متعدی- وګورئ چيچل-

چچنه:(چَ-چۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- چرچره- چرچنه- چڼچڼه- دَ مرغۍ يو
قسم-

چچو:(چَ-چو)اسم- مذکر- (۱)تے-سينه- مېمې- (۲)دَ ماشوم لاس- چاچی-

چچوړه:(چَ-چو-ړه)اسم- واحد- مذکر- يو قسم حشره چې دَ اوښانو نوکر
پورې نښتې وی- جمع چچوړې- (افغانستان)-

چچوغاړه:(چَ-چو-غا-ړه)اسم- مؤنث- وګورئ چاچوغاړه-

چچوګی:(چَ-چو-ګی)اسم- مؤنث- چاچی- وګورئ چچو-

چچونی:(چَ-چو-نی)اسم- مؤنث- بوکړی- بګړی-

چچه:(چَ-چه)اسم صوت- (۱)چې چې- اچه- اچې- چچې- دَ کډو بزو دَ شړلو
آواز-

چچې:(چَ-چې)اسم- مؤنث- (۲)چيندور- چيندری- موڅی- چيتی- دَ
ماشومانو جينکو يو قسم لوبه- (۲)دست- (دَ ماشومانو پهٔ ژبه)- (۲)چچه-

چچېدل:(چَ-چې-دل)مصدرِ لازم- ځځېدل-

چچېدن:(چَ-چې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چچېدل-

چچېدنګ:(چَ-چې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چچېدل-

چچېدنه:(چَ-چې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چچېدل-

چچېدونکے:(چَ-چې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چچېدل-

چچېدهٔ:(چَ-چې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه-
وګورئ چچېدل-

چچے:(چَ-چے)اسم تصغير- واحد- مذکر- (دَ وړو پهٔ ژبه)لاس- چاچی- چکو-

چچے:(چَ-چے)اسم- واحد- مذکر- غاښ چيچونکے- قهرژن-

چخ:(چَخ)اسم صوت- (۱)دَ سپی دَ شړلو آواز- چخې- (۲)دَ تحقير کلمه-

چخ:(چَخ)صفت- مذکر- ورننوتے- چوخ- ښخ-

چخا:(چَ-خا)اسم- واحد- مذکر- (۱)(دَ ماشومانو پهٔ ژبه)سپے- (۲)چخې-
کورې- چخه-

چخابکے:(چَ-خابن-کے)اسم- مذکر- ژامه- دَ ژامې آخری برخه- زامه-
زومه- ژامنه- جمع چخابکی-

چخپيت:(چَخ-پيت)صفت- پائمال- کوښمال- چپليت- چپړيت- چيت پيت-
چپړيخ- چخپړيت- چپليخ- مړلے شوے- پښو لاندې شوے-

چخپيتوالے:(چَخ-پيت-وا-لے)اسم- مذکر- چيت پيت والے- چپليت والے-
چپړيخوالے-

چخپيتول:(چَخ-پی-ته-وَل)مصدرِ متعدی- چپړيتول- چپړيخول- چيتول-
چټول- پائمالول- پښو لاندې کول- چقړی کول- چت پټول- چپليتول-
چپليخول- پلنول-

چخپيتون:(چَخ-پی-ته-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چخپيتول-

چخپيتونکے:(چَخ-پی-ته-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چخپيتول-

چخپيتونګ:(چَخ-پی-ته-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چخپيتول-

چخپيتونه:(چَخ-پی-ته-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چخپيتول-

چخپيتوهٔ:(چَخ-پی-ته-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چخپيتول-

چخپيتېدل:(چَخ-پی-تې-دَل)مصدرِ لازم- چيت پيتېدل- چپړيخېدل- چټېدل-
چقېدل- چيتېدل- چپليخېدل- پلنېدل-

چخپيتېدن:(چَخ-پی-تې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چخپيتېدل-

چخپيتېدنګ:(چَخ-پی-تې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چخپيتېدل-

چخپيتېدنه:(چَخ-پی-تې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چخپيتېدل-

چخپيتېدونکے:(چَخ-پی-تې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ
چخپيتېدل-

چخپيتېدهٔ:(چَخ-پی-تې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب
صيغه- وګورئ چخپيتېدل-

چختاړ:(چَخ-تاړ)صفت- واحد- مذکر- چختاړ- چيت پيت- دَ پښو لاندې
شوے- لتاړ- خړميچ- چيت شوے- چخپړيت- خړپيچ- پائمال- چخنې
شوے- دَ پښو لاندې مښلے- رسويلے-

چختاړول:(چَخ-تا-ړه-وَل)مصدرِ متعدی- مښل- لتاړول- پائېمالول- دَ پښو
لاندې کول- چيتول- چپړيتول- چخنې کول- خجل کول- مښل- خړميچول-

چخېړيتول- چختاښول- رسويل-

چختاړون:(چخ-تا-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چختاړول-

چختاړونکے:(چخ-تا-ړه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چختاړول-

چختاړونګ:(چخ-تا-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چختاړول-

چختاړونه:(چخ-تا-ړه-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چختاړول-

چختاړوۀ:(چخ-تا-ړه-وَۀ)حاصل مصدر- وګورئ چختاړول-

چختاړېدل:(چخ-تا-ړې-دَل)مصدر لازم- چيتېدل- دَ پښو لاندې کېدل-چخنې کېدل- چختاښېدل- چخپيتېدل- خرپيچېدل- خرمېچېدل- دَ پښو لاندې کېدل- رسويل کېدل-

چختاړېدن:(چخ-تا-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چختاړېدل-

چختاړېدنګ:(چخ-تا-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چختاړېدل-

چختاړېدنه:(چخ-تا-ړې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چختاړېدل-

چختاړېدونکے:(چخ-تا-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چختاړېدل-

چختاړېدۀ:(چخ-تا-ړې-دَۀ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چختاړېدل-

چختاړ:(چخ-تاړ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چختاړ-

چختک:(چخ-تَک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کومې کن- هغه سرے چې دَ کومې يا کاربز پۀ تل کښې کار کوي- (۲)دوه ښاخے مېکوړے- دوه ښاخے موړے-

چخته:(چخ-تَه)اسم- واحد- مؤنث- پټک- هغه نرم او پوست لرګے چې ماشومان پرې وړې وړې ګيټکۍ ولي-

چخ چخے:(چخ-چ-خے)اسم- واحد- مذکر- چخچے- (۱)هغه نرے لرګے چې کوړ پرې کولے شي- (۲)هغه ړکے چې ساګ پرې کولے شي-

چخچے:(چخ-چے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چخ چخے-

چخر:(چ-خَر)اسم- واحد- مذکر- چکړ- خټې- چقړې- چکړې- چيکړې-

چخړبه:(چخ-ړ-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ باران لۀ کبله دَ زمکې خټه کېدنه- خټې- چقړې - چکړې- چيکړې- چکړ- (۲)ملغوبه- چقړوبه- کړوړ شوے څيز- (۳)خبېښنه-

چخړک:(چخ-ړک)اسم صفت- واحد- مذکر- خوبلن- هغه څوک چې سترګې يې خچنې وي- چيخن- چخړن- چخن- پخړن-

چخړن:(چخ-ړَن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چخړک-

چخړوبن:(چخ-ړو-بَن)صفت- نرے- اُبلن- رقيق- اُبړن- لشوبه- اُبزن- اُبژن-

چخړوبنتوب:(چخ-ړو-بَن-توب)اسم- مذکر- چخړوبنوالے- اُبلنوالے- اُبړنوالے- چخړوبنتيا-

چخړوبنتيا:(چخ-ړو-بن-تيا)اسم- مؤنث- وګورئ چخړوبنتوب-

چخړوبنوالے:(چخ-ړو-بن-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ چخړوبنتوب-

چخړوبنول:(چخ-ړو-بۀ-نه-وَل)مصدر متعدي- (۱)اُبژنول- نرمول- اُبلنول- چخړوبن کول- (۲)چخړبه کول-

چخړوبنون:(چخ-ړو-بۀ-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چخړوبنول-

چخړوبنونکے:(چخ-ړو-بۀ-نه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چخړوبنول-

چخړوبنونګ:(چخ-ړو-بۀ-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چخړوبنول-

چخړوبنونه:(چخ-ړو-بۀ-نه-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چخړوبنول-

چخړبنوۀ:(چخ-ړو-بۀ-نه-وَۀ)حاصل مصدر- وګورئ چخړوبنول-

چخړوبنېدل:(چخ-ړو-بۀ-نې-دَل)مصدر لازم- (۱)نرمېدل- چخړوبن کېدل- اُبړنېدل- (۲)چخړبه کېدل- اتوب کېدل-

چخړوبنېدن:(چخ-ړو-بۀ-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چخړوبنېدل-

چخړوبنېدنګ:(چخ-ړو-بۀ-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چخړوبنېدل-

چخړوبنېدنه:(چخ-ړو-بۀ-نې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چخړوبنېدل-

چخړوبنېدونکے:(چخ-ړو-بۀ-نې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چخړوبنېدل-

چخړوبنېدۀ:(چخ-ړو-بۀ-نې-دَۀ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چخړوبنېدل-

چخړه:(چخ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- چخنه- چيخے- چخه- چخړے- چوخړے- دَ سترګې يا دَ پوزې خيرے- جمع چخړې-

چخړې:(چخ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ چخړه-

چخکے:(چخ-کے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے چينجے چې دَ ډېرو خوړو لۀ کبله دَ ماشومانو دَ کولمې پۀ سر(مقعد) کښې پيدا کيږي- کيخے- کوخک- کخکے-

چخل:(چ-خَل)مصدر متعدي- منډل- ننوېستل- سوخول- چوخول- ټمبل- زنل-

چخله:(چ-خۀ-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ چوخولو آله- چوکه- پېړۍ- چخونے- چکه- مچک-

چخلے:(چخ-خۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- چوخېدلے- ننوتے- چوخ شوے- چوخولے شوے- چخ شوے-

چخ مخ:(چخ-مخ)اسم- واحد- مذکر- (۱) پترکله ټوپک- (۲)چقماق- چخمخے- بکرې-

چخمخے:(چخ-مۀ-خے)اسم- واحد- مذکر- دَ ټوپک يو قسم- چخ مخ-

چخمور:(چخ-مور)اسم- واحد- مذکر- کاڼے- چپک- (م- فارسي)-

چخن:(چۀ-خَن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چوخړ- چوخړن- زولن- چيخن- خچن سترګے- خچن- اُبلن- هغه څوک چې سترګې يې چخې کوي- (۲)چټل- ناولے- (۳)تت- (۴)پساتې-

چخندے:(چ-خَن-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه تېرۀ لرګے چې ګاځې وغېره پرې وېستلے شي- کرندے- (۲)يمن سپے-

چخنه:(چ-خۀ-نه)حاصل مصدر- چخونه- چوخونه- سوخونه- منډنه- ننه اېستنه- چوکه کونه-

چخنه ګټه:(چَ-خهٔ-نه-ګو-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ لاس وړه ګټه- کچنه ګټه-

چخنې خبرې:(چَ-خهٔ-نې-خَ-بهٔ-رې)اسم- ښځینوالې خبرې- بدې خبرې-

چخېه:(چِخ-ېه)اسم- مؤنث- وګورئ چخړه-

چخښی:(چِخ-ښی)اسمِ صفت- پائمال- مبتلے- کوښمال-

چخول:(چهٔ-خه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)سوخول- چوکه کول- ننه ایستل- (۲)لمسول- لمځول- پارول- تحریکول- (۳)ښخول- لکول-

چخولے:(چهٔ-خه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چخول-

چخون:(چهٔ-خه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چخول-

چخونکے:(چهٔ-خه-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چخونکی- مؤنث چخونکې- وګورئ چخول-

چخونګ:(چهٔ-خه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چخول-

چخونه:(چهٔ-خه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چخول-

چخونے:(چَ-خو-نے)اسم- چکه- چخله-

چخوېیا:(چې-خوَې-یا)صفت- (۱)شرړېدلے- وروست- امبرځے- امبورځے- امبارے- زوړ- (۲)چنیاسن- چنېشن- چنیاسی- باسی خوراک-

چخوهٔ:(چهٔ-خه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چخول-

چخه:(چه-خه)حرفِ جار- وګورئ څخه-

چخه:(چهٔ- خه)اسم- مؤنث- پخه- لږ څیز- لږ مقدار-

چخه:(چهٔ-خه)اسم- (۱)چخ- (۲)چخړی-

چخه:(چهٔ-خه)اسم- واحد- مذکر- څخه- زخه- هغه تور رنګ لرونکې وړه دانه چې سر یُ ارې ارې وی او دَ وجود پهٔ بېلو بېلو برخو راخیژی-

چخې:(چهٔ-خې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)دَ سترګو ګند- دَ پوزې ګند- (۲- اسمِ صوت)دَ سپی دَ شړلو آواز- (۳)لرې شه- ورک شه-

چخېدل:(چهٔ-خې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)سوخېدل- منهل کېدل- دننه کېدل- منهلے کېدل- چوخېدل- ننه کېدل- (۲)تحریکېدل- پارېدل- (۳)لکېدل- ښخېدل-

چخېدلے:(چهٔ-خې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- (۱)سوخېدلے- منهلے شوے- چوخېدلے- (۲)لک شوے- ښخ شوے- (۳)لمځول شوے- تحریک شوے- لمسول شوے-

چخېدن:(چهٔ-خې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چخېدل-

چخېدنګ:(چهٔ-خې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چخېدل-

چخېدنه:(چهٔ-خې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چخېدل-

چخېدونکے:(چهٔ-خې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چخېدونکی- مؤنث چخېدونکې- وګورئ چخېدل-

چخېدونے:(چهٔ-خې-دَو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ ټومبلو آله- سوخېدونے-

چخېدهٔ:(چهٔ-خې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چخېدل-

چخے:(چهٔ-خے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے ماشے-

چخے:(چهٔ-خے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه څوک چې پهٔ سترګو کښې یُ چخې وی- چخن- (۲)چړک-

چدام:(چَ-دام)اسم- (۱)لږ کوټې- لهٔ کوټې- لږ څیز- لږ شے- (۲)دَ یوې تولې اتمه برخه- (۳)یو قسم زړهٔ سکه- دِرهم-

چدانی:(چَ-دا-نې)اسم- واحد- مذکر- دَ چایو لوښے-

چدن:(چَ-دَن)اسم- واحد- مذکر- چودن- چاؤدنه-

چدے:(چې-دے)تکیهٔ کلام- دَ "چې دے" مخفف-

چړل:(چهٔ-ړَل)اسم- واحد- مذکر- دَ خوراک نه پړک کنړول- دَ خوراک نه پړک خاورین لوښے-

چړوسکے:(چهٔ-ړُوس-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ هندوانې یا خټکې پوستکے- چړوکے-

چړوکے:(چَ-ړُو-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چړوسکے-

چړول:(چَ-ړول)اسم- واحد- مذکر- چټو- ونګ- باټکیمالے- لنګرې- (دیر)-

چر:(چِر)اسمِ صوت- (۱)دَ چرخنې یا مرغۍ آواز- (۲)دَ کپړې دَ شلولو آواز- (۳)دَ شپېلک آواز- (۴)مرمر- خرهٔ ته دَ جنسی غریزې راپارولو دَ پاره ورکونکے آواز- پارونه- لمسونه- تحریکونه-

چر:(چَر)اسم- مذکر- (۱)جار- کار- (۲)سېلابی خاوره او خړه- (۳)دَ سخا ابو لښتے او نالې- دَ سېلاب لے- ناوه- پرناله- تری- تره-

چر:(چَر)حرف- کله نه کله- یو ځل- چرې چرې- چرته- چېرې- کله کله- یو ځل نیم- چرې-

چر:(چُر)اسم- مذکر- لوټ- چور- تالان- وُچتونه- وړنه- تښتونه-

چر:(چِر)اسم- مذکر- (۱)څڅې- څړ- څړونده- څرند- دَ مال څرېدنه- (۲)هغه رسۍ چې سرکش څاروے پرې تړلے کیږی- (۳)خوشحالی-

چر:(چَر)اسم- مذکر- چارلار- طور طریقه- طرز- عادت-

چراپر:(چَ-را-پَر)اسمِ صوت- دَ مارغانو آوازونه-

چراتی:(چَ-را-تې)اسم- مؤنث- دَ ټوپک هغه چرې چې دَ کانړو نه جوړې شوې وی-

چرار:(چَ-رار)اسمِ صوت- (۱)دَ مرغیو اوچرچړیو اُوازونه- (۲)دَ کپړې دَ شلولو آواز- (۳)دَ شپېلی اواز-

چراسپه:(چَ-راس-پهٔ)اسم- مؤنث- (۱)دَ ګډو بزو دَ وړی نه جوړ شوے پړے- (۲)پهٔ اوښ دَ بار تړلو مخصوصه طریقه-

چراغ:(چَ-راغ)اسم- مؤنث- ډیوه- څراغ- دَ رڼا کولو آله- (فارسی)-

چراغان:(چَ-را-غان)اسم- مذکر- دَ جشن یا خوشحالی پهٔ شپه ډېرې زیاتې ډیوې یا دَ بجلۍ بلفونه دَ ښائست زیاتولو دَ پاره لګونه-

چراغک:(چَ-را-غک)اسمِ تصغیر- مذکر- څراغکے- چراغګوټے- وړوکې ډیوه- وړوکے چراغ- چراغکے-

چراګاه:(چَ-را-ګاه)اسم- مؤنث- څرځاے- څرن ځاے- ورشو- دَ ګډو بزو او غوا مېښو دَ څرند ځاے- دَ څرند ځاے-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، "زورکے" (شل)، "پېش" (نو-کا-ره)، "زېر" (کِ-تاب)، "جزم" (شکوں)، "ه" (زَ-ړه)، "هٔ" (ډو-بې-دهٔ)

چراگر:(چ-را-گر)اسم- مذکر- ځرندوکے- ځربدونکے-

چراوے:(چ-را-وے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)مقلد- تقلید کونکے- پېښې کونکے- چراوے- پېروی کونکے- پېښمار- (۲)دَ سترګې ګاتے-

چرائی:(چ-را-ئی)اسم- مؤنث- (۱)دَ لرګیو دَ څیرلو او ماتولو مزدوری- (۲)دَ لرګیو دَ ماتولو کار-

چرب:(چرب)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غوړ- هغه څوک چې په عېش او عشرت کښې ژوند تېروی- (۲)څرب- غټ- په وجود درونډ-

چربانګ:(چر-بانګ)اسم- واحد- مذکر- (۱) دَ چرګ دَ بانګ وخت- دَ سحر وخت- دَ پېشمنی وخت- دَ شپې آخری پهر- دَ شپې اخری برخه- چربانګے- (۲)ډېر ویونکے- خبرلوڅ- سخن ساز- فضول او عبث خبرې کونکے-

چربانګے:(چر-بانګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- پېشمنے- پشلمے- پېشلمے- پشمنے- پرشمنے- پشېمے- چربانګ-

چربخے:(چر-بهٔ-خے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے-

چرب دست:(چرب-دست)اسم صفت- واحد- مذکر- ماهر- تک لاسے-

چرب زبان:(چرب-زو-بان)اسم صفت- واحد- مذکر- ژبه ور- غوړژبے-

چرب زبانی:(چرب-زو-با-نی)اسم- مؤنث- غوړژبتیا- چالاکی-

چربښی:(چر-بهٔ-ښی)اسم- مؤنث- یو قسم مېوه-

چربل:(چر-بل)اسم- واحد- مذکر- (۱)پراوېز- (۲)پېوند- (۳)دَ اَس جلب چې دَ سپېنسو نه جوړولے کېږی-

چربور:(چر-بور)اسم- چیرې بیرې- غُنډ- ټول- لهٔ یوهٔ سره- چوربور-

چربوړے:(چر-بو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوښې بوټی- بوټی- بوټی غوښه- پسته- پسته غوښه- شله غوښه- دَ غوښې سُرخی- دَ غوښې چم-

چربه:(چر-به)اسم- مؤنث- خاکه- مسوده- نقل-

چربی:(چر-بی)اسم- مؤنث- یوه سپینه ماده چې وجود کښې دَ وینې او غوړو مادو په وجه جوړیږی- وازده- وازګه- شله- غوړوالے-

چرپا:(چر-پا)اسم صوت- څرپ- چرپ- شرپ شرپ- دَ اَبو دَ پربوتو آواز- دَ اَبو دَ توښېدو آواز- چرپا-

چرت:(چرت)اسم- (۱)خیال- فکر- تصور- خوش طبعی- مزاج- طبیعت- ښهٔ موړ- مزه- پرکالی- پرمېخی- دَ خوب معمولی جوته- (۲)دَ سترګو رندېدنه- (۳)اټکل-

چرت:(چرت)اسم صوت- (۱) دَ توکانو توکلو آواز- چرتا- چرت- (۲)دَ اَبو داره- چړک-

چرتا:(چرهٔ-تا)اسم صوت- دَ چرت چرت آواز- دَ توکانو توکلو آواز- دَ لاړو دَ توکلو آواز-

چرتکے:(چر-ت-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بې ثباته- موقتی- (۲)بې ځایه خیزکې وهونکے- تلولے- اوربدونے-

چرتکے:(چرهٔ-ت-کے)اسم- واحد- مذکر- اوپاش- شړوبے- ابهٔ شیندونکے-

چرته:(چر-ته)اسم- مؤنث- څېره- بڼه- شکل-

چرته:(چر-ته)کلمهٔ استفهام- چرته- چیرې- کوم ځائ ته- چرې- استفهامی مکانی ضمیر-

چرته چرته:(چر-ته-چر-ته)اسمِ مرکب- کله کله- یو نیم ځائ- کله خو- کله نه کله-

چرتی:(چرو-تی)صفت- واحد مذکر- خوش طبع- فکری- په چرت کښې- اندېښمن- په خیال کښې- په فکر کښې ډوب-

چرتېدل:(چرهٔ-تې-دل)فعل/اسم صوت- (۱)چرت چرت کول- (۲)چرېدل- چرچر کول- (۳)څاڅکے څاڅکے یا ګوټ ګوټ اَبهٔ راغرخېدل-

چرتېدن:(چرهٔ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چرتېدل-

چرتېدنګ:(چرهٔ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چرتېدل-

چرتېدونکے:(چرهٔ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چرتېدونکی- مؤنث چرتېدونکې- وګورئ چرتېدل-

چرتېدهٔ:(چرهٔ-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چرتېدل-

چرتے:(چر-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې زیاتې او بې ځایه خبرې کوی- چرچرک- ګربو- چرچرے- چرند- چرندک- ټرتن-

چرټ:(چرټ)اسم- واحد- مذکر- یو غټ سګرټ چې دَ کاغذ په ځائ دَ تماکو په پاڼه کښې نغښتے وی- سګار- بیړی-

چرټه:(چر-ټه)اسم- واحد- مؤنث- یوه وړه شان مرغابی- ایلی- میلی- مرغابی- مرغابطه- سائنسی نوم (ANA PLATYRHNCHOS)-

چرچا:(چر-چا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)آوازه- شهرت- مشهورتیا- نېک نامی- نوم- چرچه- افوا- (۲)عېش عشرت- مزه-

چرچاخه:(چر-چا-خه)اسم- واحد- مؤنث- ښانګی- سکو- چارښاخه-

چرچاک:(چر-چاک)اسم- غم- خواشینی- خفګان-

چرچر:(چر-چر)اسم صوت- چرار- چر چر کونه- چرېدنه- دَ چرچڼو یا نورو وړو مرغیو آوازونه- (۲)بې ځایه ټربدنه- ډېر وئېدنه- ګړېدنه- چټی غږېدنه- فضول خبرې-

چرچر:(چر-چر)کلمهٔ- مذکر- اوبش ته دَ اَبو ورکولو په وخت دا کلمه وئیلے شی- څرڅر-

چرچرانکے:(چر-چ-ران-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تاز-

چرچرک:(چر-چهٔ-رک)اسم صفت- واحد- مذکر- بې ځایه او عبث خبرې کونکے- ګړبو- چرچرے- ټرتن-

چرچرک:(چر-چهٔ-رک)اسم - واحد- مذکر- کرړے- کریړے- کیرړے- چور چورے- چماچار- جراسک-

چرچره:(چر-چهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- چرچری- شرشری- شتی- شورشوری- شورشوتی- ټوټکه- سرسری- څرڅرانکه- چمچری- یوه اتشبازی چې دَ شب قدر او وادهٔ ښادی په موقع کولے شی-

چرچړ:(چِر-چِ-ړ)اسم صوت- شور- دَ چرچر آواز-

چُرچُرې:(چُر-چُ-رې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرچره-

چرچړے:(چِر-چڼ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- چرند- کړتن- قړتن- کړتو- عبث او فضول خبرې کونکے- فضول غږېدونکے- چرچړک-

چرچله:(چِر-چڼ-له)اسم- بهير- تګ- حرکت- چل چلاؤ-

چرچڼ:(چِر-چِڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چرچنک- چنچنک- چن چڼ- (۲)دَ خالي ورځ- (۳)اول سبق-

چرچنه افيمي:(چِر-چه-نه-ا-فی-مي)اسم صفت- واحد- مذکر- پوخ املي- زوړ املي- زيات افيم خوړونکے- هغه څوک چې دَ هر وخت راسې اپيم خوري-

چرچنک:(چِر-چڼ-نک)اسم- واحد- مذکر- چرچڼ- (۱)چنچنک- چن چڼ- (۲)دَ خالي ورځ- (۳)اول سبق-

چرچنه:(چِر-چڼ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱) يو وړه خړرنګې مرغۍ چې دَ چن چڼ آواز کوي- چرچره- کوټواله- چونچنه- چوغکه- چنچنه-

چرچنے:(چِر-چ-نے)اسم- واحد- مذکر- ګنګرو- ګونګرو-

چرچوبئ:(چِر-چو-بئ)اسم- واحد- مؤنث- دَ لمبلو ځاې- غسل خانه- چرچوبئ- چمچوبئ- چنچوبئ- تشناب-

چرچور:(چِر-چور)اسم صفت- واحد- مذکر -(۱)ونړې ونړې- ټوټې ټوټې- حصه حصه-

چرچور:(چِر-چور)اسم- (۱)شور- زوږ- غالمال- (۲)تباه- برباد- لوټ تالان- چور-

چرچورکی:(چِر-چو-ر-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کرړے- کيړے- چرچورې- خرړے- چورچورکه- يو قسم حشره چې دَ شپې دَ چر چر آواز کوي- (۲)شُرشُرې- چرچرې-

چرچورې:(چِر-چو-رې) اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرچورکی-

چرچولی:(چِر-چو-لی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرچوبئ-

چرچونګی:(چِر-چون-ګی)اسم- واحد- مونث- يو قسم مرغۍ-

چرچه:(چِر-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرچا-

چرچه:(چَر-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرچه-

چرچيبئ:(چِر-چي-بئ)اسم- واحد- مؤنث- چرچوبئ- چرچوبئ- چارچوبئ- غسل خانه-

چرخ:(چَرخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)آسمان- فلک- (۲) دور- زمانه- (۳)ګردش- څرخ-

چرخ:(چِرخ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چرغ-

چرخل:(چِر-خل)اسم- واحد- مذکر- (۱)چارخول- (۲)دَ پټکی شمله- دَ لونګی شمله-

چرخوړے:(چِر-خو-ړے)اسم- واحد- مذکر- څخسوړے- سخسوړے- جمع چرخوړي-

چرخول:(چِر-خول)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چارخول-

چرخول:(چِر-خه-وُل)مصدر متعدی- تاوول-

چرخولک:(چِر-خو-لک)اسم- واحد- مذکر- چارخول- چارخوله- چارخولک- قرقره- خونړے- دَ چرګ دَ سر خونړے-

چرخولی:(چِر-خو-لی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چارخول-

چرخولے:(چِر-خو-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ سرپوښ موټے- دَ دېګ دَ سرپوښ لاسکے-

چرخه:(چَر-خه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سپنسو غښتلو آله- څرخه-

چرخی:(چَر-خی)اسم- واحد- مؤنث- ګرخه- چرخه-

چرخيړه:(چِر-خې-ړه)اسم- واحد- مؤنث- چوختے- تورتوړے- چوستے- خوښکے- کشکو- څخکوړے- چښکوړے- چوشکے- څوښکوړے- جمع چرخيړې-

چرخيله:(چِر-خې-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرخيلی-

چرخيلی:(چِر-خې-لی)اسم- واحد- مؤنث- چرخيله- چارخول- چارخوله- چارخولک- قرقره- جنه- خُونړے- څُنړے-

چرخۍ:(چَر-خۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ سپنسو غښتلو آله- څرخه- چرخه- (۲)هغه لرګے چې دَ کوړې تار ترې تاوولے شي- (۳)دَ بوڼ غړلو آله- ګرځنے- چابنی- څرخ- (۴)دَ کومې نه دَ اُبو رااېستلو آله- څرخه- چرخه- (۵)دَ ضرب نښه (×)-

چرده:(چِر-ده)اسم- (۱)دَ څېرې رنګ- مزاج- (۲)چرته- (م- فارسي)-

چرړوت:(چِر-ړوت)اسم صوت- دَ مرز اواز- دَ وربېرز آواز- دَ بتهېر آواز- دَ کرک آواز- (۲)دَ کمزورئ، ضعيف او بې زړهٔ سړي خبرې- چړړوټ-

چرړوکے:(چِر-ړو-کے)اسم- واحد- مذکر-سپېرخکے- کيليک- پېزوانے- کلی کک- دَ سسپار(کونډې)دَ تير هغه لرګے چې دَ سربانړي پهٔ واسطه جغ او تير سره کلکوي-

چرړه:(چِر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- چيرړه- ريښه- چيرړې- رنجه- رته- ريتاړه- پړانګه- تړانګه- ريښکې- رښکی- ترې- اوږده چيرړه- لته- څيره- زړه رنجه-

چرړے:(چِر-ړے)اسم- واحد- مذکر- څوړه- چوړړه- څوړے- يو خړرنګې مرغۍ چې لکۍ يې اوږده وي-

چرز:(چ-رز)اسم- واحد- مذکر- دَ باز پهٔ شان يو ښکاري مارغهٔ- ساړے- څاړے-

چرس:(چِرس)اسم- مذکر- حشيش- دَ چاڼ شوو بنګو ګرده- هغه ګرده چې پهٔ چيلم يا سيګرټ کښې څښلے شي-

چرسه:(چِر-سه)اسم- واحد- مؤنث- بورقه- بوقه- بوکه- بولچه- لوټه- ترنګڼ- دَ څرمن يا بل څهٔ کوړې نه جوړه هغه ژوره شان اوږده بوقه چې دَ کومې نه پرې اُبهٔ راوکښلے شي- هغه ترنګڼ چې دَ کومې نه پرې خاوره يا شګه راوکښلے شي-

چرسی:(چر-سی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ چرسو عملی- چرس څښونکے- هغه سړے چې چرس څښي- په چرسو اموخته- (۲)کاواک-

چرغ:(چرغ)اسم- واحد- مذکر- (۱) دَ ټپوس په شان يو سپين رنګے ښکاری مارغهٔ- ملاماتے- چرخ- چرګ- (۲)چرګ-

چرغالے:(چر-غا-لے)اسم- مرغانچه- چرګ غالے- چرګ خالے-

چرغړه:(چر-غَ-ړه)اسم- مؤنث- په زوره خندا- په کټ کټ خندا- په کړس کړس خندا- په خټ خټ خندا- په قا قا خندا- په تېزه خندا- په بړق بړق خندا- قهقهه-

چرغزه:(چر-غَ-زه)اسم- مؤنث- غڅې- غزې- يو قسم توره مرغی چې مښوکه يَ سپينه او پښې يَ نری وی او اکثر په أبو کښې ګرځي-

چرغزی:(چر-غَ-زی)اسم- مؤنث- دَ زاغاوی دَ خاندان يوه مرغی- چرغزے- کشکل-

چرغزے:(چر-غ-زے)اسم- مذکر- وګورئ چرغزی-

چرغړ:(چر-غړ)اسم- چرګ غړ- دَ چرګ دَ بانګ وخت- دَ سحر نه مخکښې وخت- چرګ بانګ مال-

چرغنک:(چر-غه-نک)اسم- واحد- مذکر- چمغړک- دَ سړی دَ مری غټه- چنغړک- چينغړک-

چرغو:(چر-غو)اسم- مذکر- يو قسم بوټے- شين ګلے-

چرغيلے:(چر-غی-لے)اسم- واحد- مذکر- چرغ- باز- شاهين-

چرک:(چرک)اسم- (۱)خيرے- سخاوالے- ګند- چټلي- ناپاکي- چخه- خيرنتوب- (۲)دَ أبو داره- چرت- هغه أبهٔ چې دَ خلې نه دَ چرت په شکل وبستلے کيږی- (۳)هغه څهٔ چې سر يَ تبرهٔ وی- څوخه- خربزه- (۴)بربش- څريکه- چړيکه- ربکه- دَ درد څريکه- (۵)زوې- نو- دَ دانې مرداري أبهٔ-

چرک:(چرک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خيرن- چټل- ناپاک- سخا- ګنده- (۲)جاسوس-

چرکلے:(چر-کهٔ-لے)اسم- مذکر- يو قسم ګيا-

چرکين:(چر-کين)اسم صفت- واحد- مذکر- ګنده- پليت- ناپاک- خيرن-

چرکېدل:(چر-کې-دل)مصدر لازم- بدن ميرى ميرى کېدل- بدن ستنې ستنې کېدل-

چرکېدن:(چر-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چرکېدل-

چرکېدنګ:(چر-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چرکېدل-

چرکېدنه:(چر-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چرکېدل-

چرکېدونکے:(چر-کې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چرکېدونکی- مؤنث چرکېدونکې- وګورئ چرکېدل-

چرکېدهٔ:(چر-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چرکېدل-

چرګ:(چرګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو قسم کورنے مارغهٔ چې غوښه يَ خوړے شی-(۲)صحرانے چرګ- هغه چرګ چې په صحرا کښې الوځی- لوټيږ- ښيګر- (۳)ټپوس- (۴)چرغ- سائنسی نوم هائيډروسيسا کارونيټا (HYDROCISA CORONATA)- (۵)دَ اس يا بل څاروی په تندی کښې سپين نشان-

چرګ:(چرګ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هنرمند- کاريګر- (۲)قابل- هوښيار- کاغ-

چرګ بانګ:(چرګ-بانګ)اسم- واحد- مذکر- چرګ بانګے- پېشمنے- پېشلمے- چرګ بانګ مال- دَ سحر آغاز- چرغړ-

چرګ بانګے:(چرګ-بانګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- پېشمنے- پېشلمے- دَ پېشمنی وخت- دَ سحر دَ راختو نه مخکښې وخت-

چرګ برګ:(چرګ-برګ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱) تور او سپين- برګے چرګے- (۲)دوکه باز- ټګ- چلباز- منافق- چمباز- ابلق-

چرګ بی:(چرګ-بی)اسم- پالک ساګ- نباتاتی نوم جستيشيا نسوټا (JUSTICIA NASUTA)-

چرګ خالے:(چرګ-خا-لے)اسم- واحد- مذکر- چرګ غالے- کوړله- کوړې- دَ چرګانو کوټنې- مرغانچه- دَ چرګو کوټکې-

چرګ رغ:(چرګ-رغ)اسم- واحد- مذکر- چرګ غړ- چرغک- چرګ بانګے- دَ سحر نه مخکښې وخت-

چرګ سابهٔ:(چرګ-سا-بهٔ)اسم- جمع- مذکر- چرګ پالک- چرګوړے- يو قسم مشهور ساګ- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ چرګ بی-

چرګ سترګے:(چرګ-ستر-ګے)اسم- مذکر- يو قسم شينکے-

چرګک:(چر-ګک)اسم- واحد- مذکر- ملاچرګک- مُدمُد- ګوړے چرګ- کوکوپش- بوبوتنکے- ملوکوړ-

چرګ مرګ:(چرګ-مرګ)اسم مرکب- "مرګ" مهمل کلمه ده چې بعضې وخت دَ "چرګ" سره ونيلے کيږی-

چرګ مرګو:(چرګ-مر-ګو)اسم- دَ چرګانو رنځ- ټوغکے- ټوغے- هغه بيماری چې په هغې کښې چرګ چرګوړی مری-

چرګند:(چر-ګند)اسم صفت- څرګند- ښکاره-

چرګ نارې:(چرګ-نا-رې)اسم- مؤنث- چرګ بانګ- چرګ غړ- چرګ رغ-

چرګ نارے:(چرګ-نا-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه مېلمستيا چې چرګ پکښې حلال شوے وی- دَ چرګ مېلمستيا-

چرګوټے:(چر-ګو-ټے)اسم- واحد- مذکر- چميکے- دَ چرګې بچے- چرګوړے- سيسوړے- وړوکے چرګ- دَ چرګ تصغير- چرګوچے- چرګوړے- چرګيړے- چومکے-

چرګوچے:(چر-ګو-چے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چرګوټے-

چرګوړی:(چر-ګو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- چرګوټې- وړوکې چرګه چې لا په آګو نهٔ وی راغلې-

چرګوړے:(چر-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چرګوټے-

ئ (ښی-زل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پيا-لی)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

چرکوړے:(چر-کو-ړے)اسم- مذکر- پالک- یو قسم ساگ-
چرکه:(چر-که)اسم- واحد- مؤنث- یو کورنے مارغهٔ چې اګې او غوښه ئې خوړے شي-
چرکیړے:(چر-کی-ړے)اسم- واحد- مذکر- جمع چرکیړی- مؤنث چرکیړی- وګورئ چرکوټے-
چرکي:(چر-کي)اسم- مؤنث- (۱)هغه ځلور کونجه نغرے چې د کوټې په مینځ یا کونج کښې جوړ وي- انغرے- نغرے- (۲)د نغری نه ګېر چاپېره تاؤ را تاؤ موړه-
چرکے:(چر-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بې شرمه- بې وعدې- (۲)هغه اَس چې په تندی ئې سپینې نښې وي- هغه ځناور چې په وجود ئې تور ټاکي وي- برګ بروګ- برګ- پروګے- هغه ځناور چې تندے ئې سپین وي-
چرلاؤ:(چر-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- مشین خانه- د مشینونو کوټه- د مشینونو ځائې- ورکشاپ- د مشینونو خونه-
چرلاوو:(چر-لا-وو)اسم- واحد- مذکر- ګرزند- ګرخند- ګرخاند-
چرلانی:(چر-لا-نی)اسم- مؤنث- چلوانی- یو قسم ساګ- نباتاتی نوم ایمرنتس ګریسیټس (AMARANTHUS GRACITIS)-
چرلټ:(چر-لټ)اسم- واحد- مذکر- (۱) د لرګی هغه ټوټه چې ښرشمشو نه تېل وباسی- (۲)ځچ پچ-
چرلټ:(چر-لټ)اسم صفت- کرسره- قطعی- بیخی- چورلټ- ټول- سراسر- بالکل- قطعی- تمام-
چرلک:(چر-لک)اسم- چورلک- ځرخ- ېېر- چکر- ګردش- دور- تاؤ-
چرلکے:(چر-ل-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پښو پونده- د پېزار پونده- د موچنې پسکی- د مچنې پونده- (۲)د ښځې د مخصوص ځائې چونګک او کچه- (۲)چرلنډے- چورلندے- پرپره-
چرلند:(چر-لند)اسم صفت- واحد- مذکر- بې سرو پښو- بې موره- بې پلاره- لګه-
چرلند:(چر-لند)اسم صفت- واحد- مذکر- فریبی- دوکه باز- بې ایمانه-
چرلندے:(چر-لن-دے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چرلنډے-
چرلنډ:(چر-لنډ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چټ- بدمعاش- لړلے- حرامی- لوچ- لونډ- لړو سټو- کچر- چولر- (۲)خاکسار - عاجز- کم نوسه- ایمن- متواضع- څورلنډ-
چرلنډے:(چر-لن-ډے)اسم- واحد- مذکر- چرلندے- پرپره-
چرلنګ:(چر-لنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- مات-
چرلول:(چر-ل-ول)مصدر متعدی- وګورئ چورلول-
چرلی غرب:(چر-لی-غرب)اسم- مذکر- مشین ګن- یوه فوجی اسلحه-
چرلېدل:(چر-لې-دل)مصدر لازم- وګورئ چورلېدل-
چرلے:(چر-لے)اسم- واحد- مذکر- چورلے- چورلندے- پری- پېرکے- بغندے- د ماشومانو د لوبو یو څیز چې څرخ خوری-

چرم:(چرم)اسم- واحد- مذکر- څرمن- پوستکے- پوست- پوټکے- پوټخے-
چرما:(چر-ما)اسم- وګورئ ارپکي-
چرمباز:(چ-رم-باز)اسم- واحد- مذکر- (۱) د غوبل اخری غوائے- څرمباز- ترمباز- پلوے- (۲)هغه غوا چې نران سخی راوړی-
چرمری:(چر-م-ری)اسم- د غوخیانو په ټوپکو نښه ویشتنه- چالماری- چاندماری- چلماری-
چرمښکه:(چر-مښ-که)اسم- واحد- مؤنث- کربوړے- چرمښکی-
چرمښکی:(چر-مښ-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شرموښکی- چرمښی- څرمښکی- کړمېښار- کربوړے- د کربوړی یو قسم- چرمشکی- پانتوپېسه- پاتو- چرمښکه- چرمکی-
چرمښی:(چر-مه-ښي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرمښکی-
چرمښے:(چر-مه-ښے)اسم- واحد- مذکر- د څرخې دوک- پټانسے- ټکی- (افغانستان)-
چرمک:(چر-مک)اسم- واحد- مذکر- د څرخې د دوک څرمن- هغه څرمن چې د دوک لاندې برخه پکښې بنده وي- د څرمنې هغه وړه ټوټه چې د څرخې دوک پکښې ګرځی- چرمکی- کردی-
چرمکی:(چر-مه-کي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چرمښکی- (۲)چرمک-
چرمکے(چر-مه-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ټکے-
چرمګر:(چرم-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې څرمنې صفا کوی-
چرموچرک:(چر-مو-چرک)اسم- واحد- مذکر- قتلمه- وړه روغنی ډوډی چې خوړه کړے شوې وي-
چرموچرګ:(چر-مو-چرګ)اسم- واحد- مذکر (۱)وړوکې چرمښکی- (۲)چرموچړے- ډېر پوست شوے-
چرموچړے:(چر-مو-چړ-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چرموچرګ-
چرموړ:(چر-موړ)اسم صفت- واحد- مذکر- پښو لاندې شوے- مښلے شوے- مروړلے شوے- پائمال- خرمیچ شوے- چخپیت- چختاڼ شوے- چخنی شوے-
چرموړکے:(چر-مو-ړ-کے)اسم صفت- وګورئ جنجوړیا-
چرموړل:(چر-مو-ړل)مصدر متعدی- مروړل- چټنی کول- چخنی کول- مښل- پائمالول- خرمیچول- چخپیتول- چرموړول- مات ګډ کول- لتاړول-
چرموړلے:(چر-مو-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چرموړلی- مؤنث چرموړلې- وګورئ چرموړل-
چرموړن:(چر-مو-ړن)حاصل مصدر- وګورئ چرموړل-
چرموړنګ:(چر-مو-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ چرموړل-
چرموړنه:(چر-مو-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چرموړل-
چرموړول:(چر-مو-ړه-ول)مصدر متعدی- وګورئ چرموړل-
چرموړولے:(چر-مو-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چرموړلے-

چرموړون:(چِر-مو-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چرموړول-

چرموړونکے:(چِر-مو-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چرموړل-

چرموړونکے:(چِر-مو-ړه-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چرموړونکی- مؤنث چرموړونکې- وګورئ چرموړول-

چرموړونګ:(چِر-مو-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چرموړول-

چرموړونه:(چِر-مو-ړه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ چرموړول-

چرموړوۀ:(چِر-مو-ړه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چرموړول-

چرموړۀ:(چِر-مو-ړۀ)حاصل مصدر- وګورئ چرموړل-

چرمه:(چِر-مه)اسم- (۱) هغه پټه چې دَ زرو دَ تار نه جوړه شوې وي- دَ زرو پلن تار- چپرمه- لپس- کناره- کناری- (۲- مذکر)دَ شین رنګ اَس- (۳- صفت)پۀ اړخ-

چرمي:(چِر-مي)اسم صفت- دَ څرمنې- دَ چرم- څرمنې سره تړلے- پۀ څرمن مربوط-

چرمینه:(چِر-مي-نه)اسم- ورګینه- بانړے- دَ څرمنې پړے- هغه پړے چې دَ غوا یا غوئې دَ څرمنې نه غړل شوے وي- دَ کچه څرمنې نه جوړه رسۍ-

چرمېشکه:(چِر-مېش-که)اسم- واحد- مؤنث- چرمشکې- یوه بې ضرره حشره چې څلور پښې یې وي-

چرند:(چۀ-رند)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې زیاتې او بې خایه خبرې کوی- بکواسی- ټرټن- کړتن- ټرټو- کړتو- چرچړے- چرندک- چرتے-

چرندک:(چِرن-دک)اسم- واحد- مذکر- چتے- چترک- چورندک- چتکے- چیتکے- پتکے-

چرندک:(چۀ-رن-دک)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چرند-

چرندوکې:(چِرن-دو-کې)اسم- مؤنث- چرخه-

چرندوکے:(چِرن-دو-کے)اسم- واحد- مذکر- چتے- چتکے-

چرنګ:(چِرنګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چرنګ-

چرنګ:(چِرنګ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې څانګه یې غځه شی نو دَ پیو غنډې سپینه مائع ترې راوځي- شودۀ پئ- پیورکے-

چرنګه:(چۀ-رنګ-که)کلمۀ استفهام- وګورئ څنګه-

چرنګے:(چ-رن-ګے)اسم- واحد- مذکر- هغه مرز چې نارې وهي- نارنی مرز- نارنی کرک- یو قسم مرز-

چرنی:(چِر-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ بورۍ ټوټه- دَ بوجۍ ټوټه- دَ ټاټ ټوټه- زل- دَ ګونۍ ټوټه چې بزګران پکښې ساګ یا واښۀ اوړي- (۲- صفت)ډېره خبرلوڅه جینۍ- نېغکۍ- ټرټنه- (۳)وړه جینۍ- کوچنۍ-

چرنے:(چِر-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱- صفت)نېغکے- ټرټو- بې خایه مشر- (۲)کوچنے- وړوکے ماشوم-

چروب:(چ-روب)اسم صفت- واحد- مذکر- تیار- څرب- څورب- مضبوط- چاغ- چاق- مزے- تکړه-

چروړه:(چِرو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ شینولو یا غوزانو کولو کوغالے (قوتے) چې پۀ زمکه کښې کنستلے شوے وي- غوچوړے- کوتي- قوتي- قوتے- کوندرے- تنګ-

چروسه:(چ-رو-سه)اسم- مؤنث- بړوی- بوړی-

چروک:(چِروک)اسم- مذکر- پار- وخت- چرونګے- دَ اَبو هغه وېش چې دَ شپې او ورځې دَ اتمې برخې سره معادل وي-

چرونه:(چ-رو-نه)اسم- جمع- مذکر- دَ لیندۍ پۀ سر کښې دَ ژۍ دَ پاره دوارړو پرو ته چرونه یا خرپونه- خرپونه- زاغ کمان-

چره:(چ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱) دَ سرپو څخه جوړه هغه وړه دانه چې پۀ بادی ټوپک کښې ویشتلے کیږی- (۲)دَ اَسپنې او سیکې څخه جوړه وړه ګول دانه چې دَ مختلفو کارونو لۀ پاره پکارولے شی-

چره:(چ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پۀ ګنو برخو کښې دَ ویشلی شوی پټی دَ ګنو برخو نه یوه برخه- دوپچه- جویه- پیچه- دَ پالېز دوپچه- (۲)زخم- درز- (۳)فوجی خدمت ته نوم ورکونه- (افغانستان)-

چره:(چ-ره)اسم- واحد- مؤنث- جزیره- ټاپو-

چره:(چ-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه چاڼ چاڼ اَبۀ چې دَ لوئې سیند نه رابیلې شوې وي او دَ څۀ فاصلې نه پس دوباره پۀ سیند کښې ورګډې شوې وي-

چره نیز:(چ-ره-نیز)اسم- واحد- مذکر- چربدار ټوپک- چرنیز- چرییز-

چرهار:(چ-ره-هار)اسم صوت- دَ مرغیو چیڼار- دَ مرغیو ګڼ آوازونه- دَ مرغیو چوڼار- دَ مرغانو چوڼارے-

چری:(چ-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- سوالګر- چړی-

چری:(چ-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ اُور بلولو انګیټۍ-

چرئیز:(چه-ره-ایز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چربدار-

چریک:(چ-ریک)اسم- واحد- مذکر- سرباز- سرتېر- خان قربانونکے- پار تېزان-

چریکی:(چ-ری-کی)اسم صفت- دَ پار تېزان- دَ چریک- سربازی- سرتېری- پارتیزانی-

چریکے:(چ-ری-کے)اسم- واحد- مذکر- ورغومے- چپلے- پسکورے- څېرلکے- کچیکے- مرغومے- چېرلے- کچوکے- څېرلے- بزغاله-

چریلکه:(چ-ریل-که)کلمۀ تحسین- شاباسے- آفرین- مرحبا- ډېر ښۀ وئیل-

چرین:(چ-رین)اسم- څړین- څربدونکے- (م- مندی)-

چرینکارے:(چِرینګ-کا-رے)اسم صوت- نرے نرے آواز-

چرې:(چ-رې)ضمیر- وګورئ چېرې-

چرې چرې:(چ-رې-چ-رې) متعلق فعل- (مرکب) کله کله- چرې- کله نا کله-

چربدار:(چ-رې-دار)اسم- واحد- مذکر- چرې لرونکے ښکاری ټوپک- چرئیز ټوپک- چرنیز- هغه ټوپک چې چربدار کارتوس پرې خلاصولے شی- چره نی- چره نی ټوپک- پترکله-

چربدل:(چ-رې-دل)مصدر لازم- (۱)چغېدل- آواز کول- چونېدل- چرچر کول-

(۲)ونېدل- ترېدل- ترټېدل- نعرې سورې وهل- کوکې وهل- چغې وهل-
(۳)څرېدل- (۴)د تيتر اواز کول-

چرېدلے:(چ-رې-دهٔ-لے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چرېدل-

چرېدن:(چ-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چرېدل-

چرېدنګ:(چ-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چرېدل-

چرېدنه:(چ-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چرېدل-

چرېدونکے:(چ-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چرېدونکي-
مؤنث چرېدونکې- وګورئ چرېدل-

چرېدهٔ:(چ-رې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه-
وګورئ چرېدل-

چرېکار:(چ-رې-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱) بزګر- مزدور- دهقان- (۲)شريک
کارکونکے-(۳)هغه مزدور چې د مالک په پټی کښې په څلورمه برخه کار
کوی- (۴)د لاندې شونډې وېښته- (۵)وګورئ اړه ګوړه-

چرېکاری:(چ-رې-کا-ری)اسم- واحد- مؤنث- د چرېکار کسب او کار-
دهقانی- زميداری- بزګری- کرونده- کښت ګری- د کرکرونډې کار-

چرې:(چهٔ-رې)اسم- مؤنث- (۱)يو قسم آلو- ژېړالو- کوک سلطان- (۲)وړوکے
دېګ چې پکښې څوښکورے وی- (۳)ناله- نالی- لښتے- اله- وياله- بياله-
(۴)يو قسم غټ اغزی لرونکے بوټے- (۵)د پخلی يو قسم بخاری ده چې
په سر باندې د اُبو اودان او د دېګونو ايښودلو د پاره مخصوص خايونه
لری- (۶)د الوچې په شان ميوه داره ونه چې ميوه يې توره او سره وی-
(۷)د خېمې نه ګېر چاپېر کنستلے خائې- چارکنده- چارنډ-

چړ:(چړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دروېزه- ټوک ټولونه- خېر ټولونه- ګدائی
کونه- وظيفه ټولونه- وزيپه ټولونه-(۲)د باران تېزه شيبه- (۳)څوړ- مخ
څوړے- اوترائی- (۴)هغه خاورې او شګې چې سېلاب راوړی وی او په يو
خائې جمع شوی وی- (۵)د سېلاب لاره- (۶)قتل عام- (۷)د کبانو د
پخېدو آواز- (۸)د منداړو د منځ غټ لرګے- (۹)په سيند کښې هغه خائې
چې چړته کاړ وی اُبه نسبتاً کمې وی او تېزې بهيږی او پاياو
(پاياب)کښې لګی-

چړ:(چړ)اسم- (۱)زغل- ډچ- ټوپ وهنه- (۲)پرېښونه-

چړا:(چ-ړا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کم عقل سړے- (۲)ګونګ- کونګے-
(۳)د بنګړيوالو يو قوم چې د رنګه تور وی-

چړا:(چ-ړا)اسم صوت- د اُبو د توئېدلو آواز- د تېز باران آواز- د ترې نه
د اُبو د توئېدلو آواز-

چړاچړ:(چ-ړا-چړ)اسم صفت- لوړه ژوره- پيچ وخم- چې هواره نهٔ وی-

چړاغ:(چهٔ-ړاغ)اسم- واحد- مذکر- لوئې زخم- ژور زخم- ژور پرهار- ژور
پياوړو-

چړاخول:(چهٔ-ړا-خه-ول)مصدر متعدی- زخم لويول- پرهار لويول- پياوړو
سترول- زخم ژورول-

چړاخون:(چهٔ-ړا-خه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چړاخول-

چړاخونکے:(چهٔ-ړا-خه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چړاخونکي-
مؤنث چړاخونکې- وګورئ چړاخول-

چړاخونګ:(چهٔ-ړا-خه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چړاخول-

چړاخونه:(چهٔ-ړا-خه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چړاخول-

چړاخوهٔ:(چهٔ-ړا-خه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چړاخول-

چړاخېدل:(چهٔ-ړا-خې-دل)مصدر لازم- زخمی کېدل- پرهارژلے کېدل-- چړاغ
کېدل-

چړاخېدن:(چهٔ-ړا-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چړاخېدل-

چړاخېدنګ:(چهٔ-ړا-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چړاخېدل-

چړاخېدنه:(چهٔ-ړا-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چړاخېدل-

چړاخېدونکے:(چهٔ-ړا-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع
چړاخېدونکي- مؤنث چړاخېدونکې- وګورئ چړاخېدل-

چړاخېدهٔ:(چهٔ-ړا-خې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب
صيغه- وګورئ چړاخېدل-

چړانګو:(چهٔ-ړانګ-ګو)اسم- واحد- مذکر- (۱)د منداوانو، بادرنګو او خربوزو
يا نورو ميوو او سبزيو ځېلی- (۲)بنې-

چړانګے:(چهٔ-ړانګ-کے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم د ولې ونه چې څانګې يې
زمکې ته ځوړندې وی- بېد مجنون- بنې-

چړاؤ:(چ-ړاؤ)اسم- (۱) چړ- قتل عام- د خپلمې قتلونه- (۲)ختنه- (۳)حمله
کونه-

چړاوتار:(چړ-اوو-تار)مصدر- مسک او ټيټ کونه- ښکته او پورته- پورته
کېدنه او ښکته کېدنه-

چړاوه:(چهٔ-ړا-وه)اسم- مؤنث- هغه اُبهٔ چې د کارېز يا بند تړلو نه پس لږې
لږې راڅڅيږی- زيم- چکاوه- نو- نم-

چړاوے:(چهٔ-ړا-وے) اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چړاوے-

چړائی:(چ-ړا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- مخ په پورته او نيغه ختلې لار- وُچته
لار- پيچومے- (م- هندی)-

چړپ:(چړپ)اسم صوت- (۱)د اُبو د توئېدلو آواز- شړپ- ترپ- چړپا-
چړپے- (۲)هغه آواز چې د شونډو نه د څهٔ څيز خوړلو يا پيپې اخستو پهٔ
وخت زخی- تخ- تق- خوند- مزه-

چړپا:(چړ-پا)اسم صوت- وګورئ چړپ-

چړپ چړپ:(چړپ-چړپ)اسم صوت- (۱)شړپ شړپ- د سپی د اُبو څښلو يا
خوراک خوړلو په وخت د خُلې آواز- (۲)په کمو ژورو اُبو کښې د بنيادم
يا د حيوان د ګرځېدو آواز-

چړپن:(چړه-پن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)عبث خبرې کونکے- بکواسی-
عبث غږېدونکے- قرتن- (۲)چرپند- شرپېدونکے لوښے- هغه لوښے چې
اُبه ترې توئيږی-

چړپند :(چړه-پند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چړپن-

چړپول:(چړ-په-ول)مصدر متعدی- (۱)چوپل- پهٔ څهٔ څیز ځله وهل- پهٔ څهٔ څیز شوندې شړپول- (۲)پهٔ اُبو کښې پهٔ لاس وهلو سره چپې پیدا کول- شړپول- (۳)دَ اُبو پړ لوښے شورول- (۴)تاوانی کول- زیانمن کول- زیانمنول- زیان رسول- نقصانی کول-

چړپولے:(چړ-په-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چړپولی- مؤنث چړپولې- وګورئ چړپول-

چړپون:(چړ-په-ون)حاصل مصدر - وګورئ چړپول-

چړپونکے:(چړ-په-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چړپونکی- مؤنث چړپونکې- وګورئ چړپول-

چړپونګ:(چړ-په-ونګ)حاصل مصدر - وګورئ چړپول-

چړپونه:(چړ-په-وهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ چړپول-

چړپوهٔ:(چړ-په-وهٔ)حاصل مصدر - وګورئ چړپول-

چړپهار :(چړپ-هار)اسم صوت- (۱)شړپار- شړپهار- شړپے- چړپے- دَ چړپ چړپ آواز- دَ اُبو شړپولو آواز- (۲)پهٔ کمو ژورو اُبو کښې دَ حیوان یا انسان دَ ګرځېدو آواز-

چړپېدل:(چړ-پې-دل)مصدر لازم- (۱)شړپېدل- پهٔ څهٔ څیز ځله وهلے کېدل- پهٔ څهٔ څیز شونډې ښوربدل- پهٔ څهٔ څیز شونډې شړپېدل- (۲)تاوانی کېدل- ړبېدل- خېږدل- زیانمن کېدل- زیانمنېدل- نقصانی کېدل- (۳)پهٔ اُبو کښې لاس وهلو سره چپې پیدا کېدل- چړپېدل- مایعات ښوربدل- (۴)دَ اُبو پړ لوښے ښوربدل-

چړپېدلے:(چړ-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چړپېدلی- مؤنث چړپېدلې- وګورئ چړپېدل-

چړپېدن:(چړ-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چړپېدل-

چړپېدنګ:(چړ-پې-دنګ)حاصل مصدر - وګورئ چړپېدل-

چړپېدنه:(چړ-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ چړپېدل-

چړپېدونکے:(چړ-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چړپېدونکی- مؤنث چړپېدونکې- وګورئ چړپېدل-

چړپېدهٔ:(چړ-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چړپېدل-

چړپے:(چړ-پے)اسم صوت- شړپے- چړپا- شړپار- چړپار- شړپی- شړپهار- دَ چړپ چړپ آواز-

چړت پړت:(چړت-پړت)اسم صفت- (۱)غوړ پړ- ړبر غوړ- (۲)کرت پرت- مېخ نهٔ ونیل- غږ نهٔ کونه- ږغ نهٔ کونه-

چړتول:(چړ-ته-ول)مصدر متعدی- لهٔ کاره ویستل- لهٔ مېنځه وړل-

چړتولے:(چړ-ته-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- شړتولے- لهٔ کاره ویستلے- لهٔ منځه وړلے-

چړتون:(چړ-تون)اسم- واحد- مذکر- دَ چړې تېکے- غلاف- دَ چړې پوښ- دَ چړې پوښ- دَ چړې تکه- دَ توري پوښ- تېکے- دَ تورې تېکے- چښتون- چنتون- (۲)تلوسه- چخ-

چړچق:(چړ-چق)اسم صوت- واحد- مذکر- وګورئ چړچقې-

چړچقه:(چړ-چه-قه)اسم صوت- واحد- مؤنث- (۱)چړچقې- (۲)چړچکې-

چړچقې:(چړ-چه-قې)اسم صوت- جمع- مؤنث- (۱)دَ چرګې مغه آوازونه چې دَ اګی اچولو نه وړاندې وروستو کوی- (۲)دَ زرکې آوازونه- (۳)دَ مرغیو آوازونه- (۴)ناړې سورې- چغې- چړچقو- چغو-

چړچک:(چړ-چک)اسم- لاسونه ټپونه-

چړچکه:(چړ-چه-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ماله- دَ شودیارې ماله- دَ سادین دَ هوارولو ماله- دَ بزګری مغه آله چې شودیاره پرې هواروی- (۲)چکې- ټاکې- چاکې- چک چک- چړچقه-

چړچکې:(چړ-چه-کې)اسم- جمع- مؤنث- چک چکې- تاړې- لاس ټکونه- ټاکې ومنه- چکې-

چړچوبک:(چړ-چو-بک)اسم صفت- واحد- مذکر- اُبرن- چړچوبن- نرے- ابژن- اُبلن-

چړچوبن:(چړ-چو-بن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چړچوبک-

چړچوبه:(چړ-چو-به)اسم- مؤنث- مغه ړوړی چې پهٔ کرتو کښې ماته شی او دَ پاسه پرې غوړی واچولے شی- کورت او غوړی-

چړچوبی:(چړ-چو-بی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)غسل خانه- دَ لمبلو ځائې- چارچوبی- چمچوبی- لمبل ځائې- سقاوه- چپړچوبی- تشناب- غسل خانه- (۲)تنګ کور- تنګ ځائې- (۲)چارسو-

چړچه:(چړ-چه)اسم- چړچه- عیش عشرت- مېله- مزه- عیاشی- مزې مېلې- (۲)لونېتوب- کاسیری- فضول خرچی- فضول خرڅی-

چړچی:(چړ-چی)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چړچیی-

چړچیی:(چړ-چه-ئی)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ مزو چړچو کښې وخت تېرونکے- عیشی- عیاش- قلاش- چړچناک- اواره- څربله- لوفرداتے- بدچلند- رنړی باز- اننډونے-

چړچېوه:(چړ-چې-وه)اسم- واحد- مؤنث- چړچوبی- چارچوبی- دَ لمبا ځائې- غسل خانه- سقاوه- حمام- دَ لمبلو ځائې-

چړرا:(چړ-را)اسم صوت- شړرا- شړار-

چړروت:(چړ-روت)اسم صوت- وګورئ چړروت-

چړزندی:(چړ-زن-دی)اسم- مؤنث- تیربندی- تیره بندی- دَ امن معامده-

چړس:(چړس)اسم- واحد- مذکر- چرس-

چړغ:(چهٔ-رغ)اسم- واحد- مذکر- جوړنګ- جلغ- خبلی- جیلغ-

چړغه:(چړ-غه)اسم- واحد- مؤنث- مغه تېرهٔ کانړے چې دَ ضرورت پهٔ وخت کښې پرې څاروی حلالولے شی- چپر- چشنکے- چوړے-

چړق:(چړق)اسم صوت- (۱)دَ لرګی دَ ماتېدو آواز- (۲)دَ اُبو یا بل مائع څیز پهٔ زمکه دَ تونېدو آواز- شړپ- چړپ- چړک- (۳)تېز باران- شړق-

(۴)آفت- اَپت- مصیبت- تکلیف- (پرېوتل مصدر)-

چړقاڼ:(چِړ-قاڼ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چړکاڼ-

چړک:(چِهٔ-ړَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)آسمان- (۲)تاله- جرنده- کُلپ- جمع چړکونه-

چړک:(چِړَک)اسم- واحد- مذکر- دَ دروازې تمبه- دَ دروازې اړم- دَ دروازې تمچو-

چړک:(چِړَک)اسم صوت- (۱)دَ لرګی دَ ماتېدو آواز- دَ اُبو دَ تونېدو آواز- دَ څهٔ کلک څیز دَ ماتېدو آواز- ټک- ټنګ- درز- دَ دوُو څیزونو پهٔ خپلو کښې دَ جنګېدو آواز- (۲)سېلاب- څړک-

چړکانے:(چِړ-کا-نے)اسم- مذکر- واحد- هغه کانے چې چاقو چاړهٔ پرې تېرهٔ کولے شي- برچ- بېلو- اسونے- مخوره-

چړکاڼ:(چِړ-کاڼ)اسم- واحد- مذکر- چنګاڼ- دَ دوړو کښېنولو پهٔ غرض نرۍ نرۍ اُبهٔ شیندنه- دَ اُبو پاشنه- پاشنه- دَ اُبو ښندنه- یو ځایې اُپاشی کونه- ترمکیا- ترمکه- ترمکه کونه-

چړکاوول:(چِړ-کا-وه-وَل)مصدر متعدی- نرۍ نرۍ اُبهٔ ترمیا کول- اُبهٔ شیندل- دَ اُبو شنل- دَ اُبو شندل- اُپاشی کول- زمکه پهٔ اُبو لوندول- ترمکه کول- پهٔ لاس لږې لږې اُبهٔ خورې ورې اچول-

چړکاوون:(چِړ-کا-وه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چړکاوول-

چړکاوونکے:(چِړ-کا-وه-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چړکاوونکی- مؤنث چړکاوونکې- وګورئ چړکاوول-

چړکاوونګ:(چِړ-کا-وه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړکاوول-

چړکاوونه:(چِړ-کا-وه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چړکاوول-

چړکاووهٔ:(چِړ-کا-وه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړکاوول-

چړکه:(چِړهٔ-که)اسم- مؤنث- (۱)برېښ- درد- څړیکه- سوز- چړیکه- ځانګه- (۲)خلا- برېښنا کونه- ځلېدنه- برېښېدنه-

چړکه:(چُړ-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم وړه خړرنګې مرغۍ چې اوږده لکۍ لری-

چړکه:(چُړ-که)اسم صفت- واحد- مذکر- بې همته او ناراسته سړے- لټ-

چړکۍ:(چُړ-کۍ)اسم- واحد- مؤنث- چړوکۍ- وړه چاړهٔ- چوړکۍ- چاړهٔ- چوړکۍ- چاړوکۍ- چړکے-

چړکے:(چِړ-کے)اسم- واحد- مذکر- چاقو- چاکو- جمع چړکی-

چړګر:(چِړ-ګَر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خېرمار- دروېزه- فقیر- چړمار- سوالګر- چړی- سوالی- چړو- هغه فقیر یا سوالګرے چې کور پهٔ کور چړ ټولوی او سوال کوی- (۲)وظیفه ټولونکے- وظیپمار- چنے-

چړګے:(چُړ-ګے)اسم- واحد- مذکر- پایاڼ- پایاب- پهٔ دریاب کښې هغه کاڼیز ځایُ چې لږې لږې اُبهٔ پکښې بهیږی-

چړمار:(چِړ-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چړګر-

چړمینې:(چِړ-مې-نې)اسم- جمع- مؤنث- څرمنې-

چُړن:(چُ-ړَن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مخ چړن- (۲)مخ خوړند-

چړن:(چُ-ړَن)اسم- دَ سېلاب لاره- غولی-

چړنګ:(چو-ړنګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ جوړنګ-

چړنګ:(چِړَنګ)اسم صوت- لهٔ لوړه ځایه دَ لږو اُبو دَ تونېدو آواز-

چړو:(چُ-ړَو)اسم- واحد- مذکر- یوه خړرنګې مرغۍ چې لکۍ يُ اوږده وی-

چړو:(چُ-ړَو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لټ- بې همته او ناراسته سړے- (۲)چړګر- خېر غښتونکے-

چړوبن:(چُ-ړو-بَن)اسم صفت- واحد- مذکر- اُبړن- اُبزن- اُبزن- نوژن- نمژن- اُبهٔ لرونکے- ابلن-

چړوبے:(چُ-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- (۱)اُشار- خړوبے- ابشار- چړووے- جړوبے- (۲)پهٔ پرچون خرڅونه- پرچون فروشي- (۳)دَ پرچون سوداګر- جمع چړوبی/چړوبیان-

چړوبے:(چه-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- چړووے- رنګرېز- ننګرېز- نیل ګر- رنګساز- جمع چړوبی-

چړوتوب:(چَ-ړو-توب)اسم- بې غېرتی- بې همتی- پستی- ناراستی-

چړوس:(چُ-ړَوس)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بې همته- خړوس- پست- بې شرمه- بدسرے- (۲)ډېر زیات شوم- جمع چړوسان-

چړوسی:(چَ-ړو-سی)اسم- مؤنث- (۱)ناراستی- بې همتی- خړوستوب- پستی- چړوس والے- بې حیائی- بې شرمی- (۲)ډېر شوم والے-

چړوک:(چِړوک)صفت- ټک- وار- ځل- دم- ساعت- ژر- فوراً- پهٔ یو وار- پهٔ یو ټک- پهٔ یو ځل- پهٔ یو ساعت-

چړوکۍ:(چُ-ړو-کۍ)اسم- واحد- مؤنث- چړوکۍ- چوړکۍ- ورکوټې چاړهٔ-

چړول:(چَ-ړه-وَل)مصدر متعدی- (۱)چړکاڼول- چنګاڼ کول- پاشل- اُبهٔ نُستل- (۲)بیول- لهٔ نسه کول- اسهالول- پهٔ دستونو کول-

چړون:(چَ-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړونکے:(چَ-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چړول-

چړونګ:(چَ-ړه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړونګ:(چِړونګ)اسم صوت- دَ چرګوړو او مرغیو آواز- دَ چرګوړو سیوېدنه- دَ چنچڼو آواز- دَ چرګوټیو چینګ چینګ- چړونګا- چړونګار- چړونګهار-

چړونګا:(چِړونګ-ګا)اسم صوت- وګورئ چړونګ-

چړونګول:(چِړونګ-ګه-وَل)مصدر متعدی- چڼول- سیوول- واړهٔ چرګوټي پهٔ آواز راوستل- واړهٔ چرګوټي چینګول-

چړونګون:(چِړونګ-ګه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چړونګول-

چړونګونکے:(چِړونګ-ګه-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چړونګونکی- مؤنث چړونګونکې- وګورئ چړونګول-

چړونګونګ:(چِړونګ-ګه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړونګول-

چړونګونه:(چِړونګ-ګه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چړونګول-

چړونګوهٔ:(چِړونګ-ګه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړونګول-

چړونګهار:(چړونګ-ګه-هار)اسم صوت- وګورئ چړنګ-

چړونګېدل:(چړونګ-ګې-دل)مصدر لازم- چړېدل- چینګېدل- سیوېدل- چنګېدل- چونېدل- د چرګو چنګېدل-

چړونګېدلے:(چړونګ-ګې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چړونګېدلي- مؤنث چړونګېدلې- وګورئ چړونګېدل-

چړونګېدن:(چړونګ-ګې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چړونګېدل-

چړونګېدنګ:(چړونګ-ګې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړونګېدل-

چړونګېدنه:(چړونګ-ګې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چړونګېدل-

چړونګېدونکے:(چړونګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چړونګېدونکي- مؤنث چړونګېدونکې- وګورئ چړونګېدل-

چړونګېدۀ:(چړونګ-ګې-دۀ)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چړونګېدل-

چړونګے:(چړونګ-کے)اسم- مذکر- ګټ اُبۀ- ټکی اُبۀ- ډېرې لږې اُبۀ- کمې اُبۀ- بیخی کمې اُبۀ-

چړونه:(چ-ړه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړونی:(چ-ړو-نی)اسم- مؤنث- چاړ-

چړووے:(چ-ړه-ڑو-نے)اسم- واحد- مذکر- غلبیل- چاړ-

چړووے:(چ-ړو-وے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ابشار- چړوبے- ځروبے- اوشار- جروبے- (۲)چړوبے- رنګساز-

چړوۀ:(چ-ړه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړوے:(چ-ړه-وے)اسم- واحد- مذکر- چړوبے- ابشار- جروبے-

چړه:(چ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د دروازې چوڼ- (۲)تېلم- ترازه- ترتڼ- چنبه- تروزه- ټنګره- (۳)چاړۀ- چړوکی- چوړۀ- (۴)چړ- سوال- ټوک ټولونه- خېر ټولونه- ګدائی- (۵)وظیفه غښتنه-

چړه:(چه-ړه)اسم صفت- واحد- مذکر- مؤنث- (۱)بې وسلې- تش لاس- چې وسله ورسره نۀ وی- (۲)جره- ځړه- لنډر- لونډ- بې کوڼ-

چړهار:(چه-ړه-هار)اسم صوت- (۱)د اُبو وُچت ځائې نه ښکته ځائې ته د پرېوتو آواز- شړپار- شړهار- شړار- (۲)چوټهار- چنهار- چورهار- د مرغانو آواز- (۲)د کبابو د پخېدو آواز-

چړی:(چ-ړی)اسم صفت- واحد- مذکر- وظیفې غښتونکے- چړ ټولونکے- چړګر- چړمار- چڼے- طالب- جمع چړیان-

چړیا:(چړ-یا)اسم صفت- اخته- لګیا- بوخت- مصروف- پۀ څۀ کار باندې اخته- مشغول- (کول کېدل مصدرونه)-

چړیاګر:(چړ-یا-ګر)اسم- واحد- مذکر- هغه ځائې چې قسم قسم ځناور او مارغان پکښې د تماشې د پاره ساتلے کیږی- باغ و حش- ژوبڼ-

چړیاو:(چړ-یاو)اسم- واحد- مذکر- چنیا- د ځپلی د تسمې لکی- د ځپلی د بند هغه سر چې د بکسوې سره ترلے کیږی-

چړیتوب:(چ-ړی-توب)اسم- مذکر- (۱)ټوک ټولونه- خېرماری- دروېزه کری- دروېزه کونه- (۲)طالبی-

چړین:(چ-رین)اسم- ځړین- چرین- ځړېدونکے-

چړیمار:(چ-ړی-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- ښکاری- ښکارژن- د مرغیو ښکاری- د ښکاریانو یو قوم چې د غوایانو د ګاډې پۀ ذریعه ښکار کوی-

چړې چاکوان:(چ-ړې-چا-کوان)اسم مرکب- جمع- (۱)وسله بند- تیار بېدار- (۲)چړې او چاکوان-

چړې بړې:(چ-ړې-ب-ړې)اسم- چیری بیری- (عامیانه)- عیش معاش-

چړېدل:(چ-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)د اُبو چړ چړ کېدل- شړپېدل- (۲)پۀ دستونو کېدل-

چړېدن:(چ-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چړېدل-

چړېدنګ:(چ-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړېدل-

چړېدنه:(چ-ړې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چړېدل-

چړېدونکے:(چ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چړېدونکي- مؤنث چړېدونکې- وګورئ چړېدل-

چړېدۀ:(چ-ړې-دۀ)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چړېدل-

چړېس:(چ-ړېس)اسم صفت- واحد- مذکر- ناولے- ناپاکه- ناپاک- ګنده- چڼېش- چڼاش- چړپسن- سخا او خیرن- پوهاړ-

چړېسن:(چ-ړې-سن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چړېس-

چړېسوار:(چ-ړېس-وار)اسم صفت- واحد- مذکر- تیار- بېدار- مسلح-

چړی:(چ-ړی)اسم- مؤنث- (۱)د کجورې پاڼه- میزرے- مزرے- (۲)جرړی- نیلی- (۲)جړی- مسلسل باران-

چړے:(چه-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چڼے-

چړول:(چۀ-ړه-ول)مصدر متعدی- جړول- سرۀ کول- پۀ غوړو یا تېلو کښې سرۀ کول- وریتول- تلول-

چړون:(چۀ-ړه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړونکے:(چۀ-ړه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چړونکی- مؤنث چړونکې- وګورئ چړول-

چړونګ:(چۀ-ړه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړونه:(چۀ-ړه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړوۀ:(چۀ-ړه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړول-

چړېدل:(چۀ-ړې-دل)مصدر لازم- (۱) جړېدل- وریتېدل- پۀ غوړو یا تېلو کښې سرۀ کېدل- (۲)تړېدل- کرتېدل-

چړېدن:(چۀ-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چړېدل-

چړېدنګ:(چۀ-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چړېدل-

چړېدنه:(چۀ-ړې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چړېدل-

چړېدونکے:(چۀ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چړېدونکی- مؤنث چړېدونکې - وګورئ چړېدل-

چزېدهٔ:(چهٔ-زې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چزېدل-

چس:(چِس)اسمِ صوت- (۱)چسار- (۲)خوند- مزه- (اسم)-

چسا:(چهٔ-سا)اسمِ صوت- وګورئ چسار-

چسار:(چهٔ-سار)اسمِ صوت- هغه اواز چې پهٔ سکروټو یا بل تود څیز دَ اُبو اچولو پهٔ سبب پیدا کیږی- چسا- چس چس- نرے نرے شغار-

چسپ:(چِسپ)اسم- (۱)برابر- سم- درست- پهٔ قالب برابر- (۲)پېوستون-

چسپان:(چِس-پان)اسم صفت- (۱)چست- چالاک- (۲)تنګ- هغه جامې چې پهٔ بدن پورې نښتې وی- (۲)پېوست- نښتے-

چسپانتیا:(چِس-پان-تیا)اسم- پهٔ کار کښې تندی - چالاکی-

چسپانده:(چِس-پان-ده)اسم صفت- واحد- مذکر- تکړه- چابک- چُست- چالاک- فعال- تېز- بېدار-

چسپناک:(چِسپ-ناک)اسم صفت- سلېش لرونکے- سلېښناک- سرېښناک-

چسپوک:(چِس-پوک)صفت- مذکر- بروے- سلېښناک-

چسپول:(چِس-په-وَل)مصدر متعدی- سرېښول- نښلول- نصبول- نصب کول- پېوست کول- یو ځایَ کول- برابرول- سمول- درستول- پېوستول-

چسپون:(چِس-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چسپول-

چسپونکے:(چِس-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چسپول-

چسپونګ:(چِس-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چسپول-

چسپونه:(چِس-په-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چسپول-

چسپوهٔ:(چِس-په-وَهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چسپول-

چسپېدل:(چِس-پې-دَل)مصدرِ لازم- سلېښېدل- سرېښېدل- نښلېدل- نصبېدل- نصب کېدل- پېوست کېدل- یو ځایَ کېدل- برابرېدل- لګېدل-

چسپېدن:(چِس-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چسپېدل-

چسپېدنګ:(چِس-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چسپېدل-

چسپېدنه:(چِس-پې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چسپېدل-

چسپېدونکے:(چِس-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چسپېدونکی- مؤنث چسپېدونکې- وګورئ چسپېدل-

چسپېدهٔ:(چِس-پې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چسپېدل-

چست:(چُست)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چابک- چالاک- ګړندے- متے- چاق- تُند- (۲)تنګ- راکښلے-

چستان:(چِس-تان)اسم- مؤنث- چیستان- معمه- (م- فارسی)-

چستول:(چُس-ته- وَل)مصدرِ متعدی- تېزول- تُندول- ګړندے کول- چابکول- چالاکول- چاقول-

چستون:(چُس-ته-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چستول-

چستونکے:(چُس-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چستونکی- مؤنث چستونکې- وګورئ چستول-

چستونګ:(چُس-ته-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چستول-

چستونه:(چُس-ته-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چستول-

چستوهٔ:(چُس-ته-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چستول-

چُستی:(چُس-تی)اسم- واحد- مؤنث- بچه دان- رحم- کولمه- چشتی- بوړی-

چُستی:(چُس-تی)اسم- (۱)تېزی- تُندی- چابکی- چالاکی- ګړندے والے- متے والے- چاقی- (۲)حصه- برخه- ټوټه-

چُستے:(چُس-تے)اسم- واحد- مذکر- جمع چُستی- وګورئ چوستے-

چس چس:(چِس-چِس)اسم صوت- وګورئ چسا-

چستېدل:(چُس-تې-دَل)مصدرِ لازم- چُستی او چالاکی اختیارول- چالاکېدل- چاقېدل- تکړه کېدل-

چستېدن:(چُس-تې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چستېدل-

چستېدنګ:(چُس-تې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چستېدل-

چستېدنه:(چُس-تې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چستېدل-

چستېدونکے:(چُس-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چستېدونکی- مؤنث چستېدونکې- وګورئ چستېدل-

چستېدهٔ:(چُس-تې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چستېدل-

چسېدل:(چهٔ-سې-دَل)مصدرِ لازم- پهٔ سکروټو اُبهٔ توئېدل او ترې نه چس چس اواز وتل-

چسېدن:(چهٔ-سې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چسېدل-

چسېدنګ:(چهٔ-سې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چسېدل-

چسېدنه:(چهٔ-سې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چسېدل-

چسېدونکے:(چهٔ-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چسېدونکی- مؤنث چسېدونکې- وګورئ چسېدل-

چسېدهٔ:(چهٔ-سې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چسېدل-

چش:(چش)ضمیر- څهٔ- څهٔ شے- څهٔ څیز-

چشپک:(چش-پک)اسم- واحد- مذکر- دَ پوستین وړی لرونکے پېوند- دَ پوستکی هغه ټوټه چې وړی لری- دَ پوستین ټوټه-

چشپیره:(چش-پی-ره)اسم- واحد- مؤنث- بولانی- پیرکی-

چشت:(چِشت)اسم صوت- دَ ناراضی یا دَ چا متوجه کولو دَ پاره دَ خُلې نه وتونکے آواز- چیش-

چشتن:(چِش-تَن)اسم- واحد- مذکر- څښتن- مېړهٔ- وادهٔ کړے- خاوند- کوروالا- دَ وړو پلار-

چشتی:(چِش-تی)اسم- مؤنث- دَ یوې طریقې نوم چې خواجه معین الدین چشتی ته منسوبه ده-

چشتی:(چِش-تی)اسم- واحد- مؤنث- برخې-برنځ- دَ خېټې او نس پرده-

دَ لری ټوپی- دَ لری هزار خانه- سل پاټے-

چشتے:(چُش-تے)اسم- واحد- مذکر- رحم- ښېلان- ښېلانځ- چشتی- چشتے- بوړی- چستکے- چشکے-

چشکے:(چُش-کے)اسم- واحد- مذکر- وګوری چشتے-

چشم:(چَ-شم)اسم- واحد- مذکر- سترګه- دیده-

چشم بندی:(چَ-شم-بَن-دی)اسم- مؤنث- نظربندی- شُعبده- حقه بازی- نیرنګ- پهٔ جادو سره دَ څیزونو شکل بدلونه-

چشم پوشی:(چَ-شم-پو-شی)اسم- مؤنث- سترګې پټول- لیدل او غرض پرې نهٔ کول- ځان ناغرضه کول- ځان پهٔ ناغرضو کښې اچول-

چشمک:(چَش-مَک)اسم- (۱)سترګې بندول- پهٔ سترګو اشاره کول- (۲)سترګک-

چشمکه:(چش-مه-که)اسم- مؤنث- عېنکې- چشمې-

چشمه:(چَش-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چینه- خزی- (۲)عېنک- چشمې-

چشمه سار :(چش-مه-سار)اسم- هغه ځائې چرته چې ډېرې چینې وی- چنوبه-

چشمې:(چش-مې)اسم- واحد جمع- مؤنث- هغه آله چې دَ بینیې یا مسالې نه جوړه وی- دَ کم نظر دَ پاره، سترګې دَ نمر نه بچ کولو او دَ ړول دَ پاره پهٔ سترګو لګولے شی- عېنکې- چشمکې-

چشنه:(چَ-شَهٔ-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګوری چېشن-

چشی:(چَ-شی)اسم- مؤنث- وګوری چمبېره-

چشے:(چهٔ-شے)ضمیر- چهٔ شے- څهٔ څیز-

چشے:(چهٔ-شے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ازغن بوټے-

چښاک:(چښاک)اسم- څښاک- څښنه- چښنه- څکنه- چېښنه-

چښتن:(چښ-تن)اسم- واحد- مذکر- وګوری څښتن-

چښتون:(چښ-تون)اسم- واحد- مذکر- وګوری چړتون-

چښچه:(چښ-چه)اسم- واحد- مؤنث- پرخچه- دړه- توتنے- توتنکے- توتنے- توتنکے-

چښکورے:(چښ-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- چوښتے- ځوشکورے- چوشکه- ځښکورے- چوشکے- ځوکه- ځښنک- سونټ- چانګ- او دا قسم نورو څیزونو هغه برخه چې اُبهٔ ترې راتوئېږی- کشکورے- سُنت- چوستے کشکول- ځوښکے- ځوخنګ- چښکه-

چښکه:(چښ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګوری چښکورے-

چښکے:(چِښ-کے)اسم- واحد- مذکر- چوسے- ذکر- غینې- دَ سړی آلهٔ تناسل- غین- غنې-

چښل:(چِښل)مصدر متعدی- چېښل- ښښل- څکل- چېښل- چکل- چشل-

چښلے:(چِښهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چښلی- مؤنث چښلې- وګوری چښل-

چښن:(چِښن)حاصل مصدر- وګوری چښل-

چښنګ:(چِښنګ)حاصل مصدر- وګوری چښل-

چښنوکے:(چښ-نو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چاګل- چښونکے- ګوړے- وړوکے مشک- وړوکے ژے- (۲)یو قسم وړه مشکوله-

چښنه:(چِښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری چښل-

چښوبے:(چښو-بے)اسم- شربت- دَ ښښلو څیز- مشروبه- مشروب-

چښول:(چښه-وَل)مصدر متعدی- اُبهٔ ورکول- اُبول- پهٔ اُبو مړول- پهٔ اُبو خړوبول- خړوبول- څښول-

چښون:(چِښه-وَن)حاصل مصدر- وګوری چښول-

چښونګ:(چِښه-وَنګ)حاصل مصدر- وګوری چښول-

چښونه:(چِښه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری چښول-

چښونکې:(چِښون-کې)اسم- واحد- مؤنث- چښونکے- دَ شپنو یا مسافرو وړه مشکوله چې غاړې ته یې اچوی- بتک-

چښونکے:(چِښون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چښونکی- مؤنث چښونکې- وګوری چښل-

چښونکے:(چِښه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوری چښول-

چښوهٔ:(چِښه-وهٔ)حاصل مصدر- وګوری چښول-

چښے:(چهٔ-ښے)کلمهٔ استفهام- څهٔ شے- څهٔ څیز- دَ څهٔ شی مخفف-

چښے:(چَ-ښے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے ازغن بوټے چې اُبهٔ یې دَ وینې صفا کولو دَ پاره پکارولے شی- سپل ازغے- سپل اغزے- اغزکے- ازغکے- نباتاتی نوم اسپېریګس ګرېسی ټس (ASPARIGUS GRACITIS)-

چغ:(چغ)اسم صوت- (۱)دَ مرغی آواز- (۲)دَ دروازې دَ بندلو آواز-(۳)شور زوږ- غالمغال- (۴)دَ سرهٔ کړو غوږو آواز چې پهٔ څهٔ څیز پرېوزی یا پهٔ څهٔ واچولے شی- چش-

چغ:(چغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه پرده چې دَ بانس دَ نریو نریو تیلیو نه جوړه شوې وی، او خلق یې ورونو او کړکیو ته اوېزاندوی- چق- چک- کېړ- پکل- پرده- کانے- (۲)غیچ- دَ ماشومانو یو قسم لوبه- (۳)اوړد- (۴)دَ مرغیو یو قسم جال (تور)-

چغ:(چغ)اسم صفت- واحد- مذکر- چاق- تېز- جلت- ګړندے- چاغ- چاخ-

چغ:(چغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ مزی چلېدونکے بادپکے- ببوزے- بادکش- لاسپکے- بادپکے- (۲)هغه خبره چې شر ترې ولاړیږی- جګړه- ټنټه-

چغا:(چَ-غا)اسم صوت- چغار- چیغې- کریغې- شور زوږ- غالمغال- چغارې-

چغاته:(چهٔ-غا-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ لرګی اَس-

چغار:(چَ-غار)اسم صوت- وګوری چغا-

چغار:(چَ-غار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګوری چغر-

چغاره:(چهٔ-غا-ره)اسم صوت- وګوری چغا-

چغاغه:(چهٔ-غا-غه)اسم- واحد- مؤنث- یو تُرش او تریو بوټے چې پهٔ دوایی کښې پکارولے شی-

چغال:(چَ-غال)اسم- واحد- مذکر- ګیدړ- شغال- سورلنړے-

چغال غار :(چَ-غال-غار)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو یو قسم لوبه-

ئ (ځی-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګوری تشریحات صفحه ۱

چغالکے:(چ-غال-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ سترګې کُنج چې دَ پوزې خوا ته نژدې وی- چغښکے-

چغالی:(چَ-غا-لی)اسم- (۱)تش مېدان- خالی مېدان- (۲)وُچې خرمانی- خشک زردالو-

چغالی:(چ-غا-لی)اسم- خخلې- خس خاشاک- ترپړ- لتکه-

چغالی ور:(چَ-غا-لی-ور)اسم- واحد- مذکر- دَ باغ وړه دروازګی- دَ باغ وړه دروازه-

چغانغه:(چ-غان-غه)اسم- مؤنث- نانا- پودینه- وبلنے- نانایلنے- لېونکے- انګریزی وبلنے-

چغانغه:(چَ-غان-غه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چارخول-

چغانګ:(چَ-غا-نګ)اسم- واحد- مذکر- دَ کونګټ په څېر ورکوټې شان خزنده چې څوک يې ونيسی نو دَ چغ چغ آواز کوی-

چغانه:(چ-غا-نه)اسم- واحد- مؤنث- سرینده- سارنګی- سیرنده- سرنده- سارنده- سارنګا- دَ موسیقی یوه آله- غجکه-

چغانے:(چ-غا-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ زنې ژور او ورننوتے ځاې چې زړه ادبیاتو کښې دَ شاعرانو لهٔ خوا ډېر ستائیلے شوے دے- دَ زنې ګوتے- زنخدان-

چغاول:(چهٔ-غا-وَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ زنانو دَ غاړې يو قسم کالے (پسول)- (۲)دَ باز، باښې او نور ښکاری مارغانو دَ غاړې بند (غاړکی)-

چغ بغ:(چغ-بغ)اسم صوت- شور زوږ- چغې سورې- چوغ پوغ- غالمغال- چغ پغ-

چغبوز:(چغ-بوز)اسم- واحد- مذکر- دَ ملخ په شان يوه حشره-

چغ پغ:(چغ-پغ)اسم صوت- وګورئ چغ بغ-

چغت:(چ-غت)اسم- واحد- مذکر- مغل-

چغتا:(چغ-تا)اسم- واحد- مذکر- دَ تیمور بادشاه دَ قبیلې نوم- دَ مغلو يوه قبیله- چغتائی-

چغتار:(چغ-تار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چلتار-

چغته:(چغ-ته)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم ایلی (میلی)- سائنسی نوم کیپیله ایس پی پی (CAPELLA SPP)-

چغتے:(چُغ-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع چُغتی- مؤنث چُغتې- دَ چغتا قبیلې غړے- چُغتا قبیلې ته منسوب-

چغڼ:(چهٔ-غړ)اسم صفت- واحد- مذکر- چټل- ناولے- ناپاک- خیرن- کثیف-

چغجی:(چغ-جی)اسم- مؤنث- چغچی- چغزی- ګبچی- مغز- زړے- ګبری- دَ غوز يا بادام دننه غوړ مغز- چغزی-

چغ چغ:(چغ-چغ)اسم صوت- وګورئ چغ چوغ-

چغ چوغ:(چغ-چوغ)اسم صوت- دَ مرغیو چنبارے- شور شغب- غلبله- چغې چغارې- شور شغرب- چغ چغ- غل وغوبل- غالمغال- غلغله- شور زوږ- شوربکت- چغ پغ- چغ بغ-

چغچی:(چغ-چی)اسم- مؤنث- وګورئ چغجی/چغزی-

چغد:(چَ-غد)اسم- واحد- مذکر- چغرو- کونګ- کونګے- بوم- بم- الّو- يو قسم مارغهٔ چې دَ شپې الوځی- (م- فارسی)-

چغر:(چَ-غر)اسم صفت- واحد- مذکر- بېنګا- برېنګا- بټ سترګے- کږ سترګے- ړوند سترګے- چوغر- چپک سترګے- چپے- بټار سترګے- بټا- برګ سترګے- کوبد سترګے- يو سترګے- هغه انسان يا حیوان چې يوه سترګه يې ضائع شوې وی- هغه انسان چې يوه سترګه چپه غړوی- هغه انسان يا حیوان چې دَ سترګو توازن يې په ځاې نهٔ وی-

چغرسترګے:(چ-غر-سټر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع چغرسترګی- مؤنث چغرسترګې- وګورئ چغر-

چغرکه:(چ-غ-ره-که)اسم- مؤنث- يو غرځنے بوټے چې دَ سوزولو دَ پاره پکارولے شی او ګوړې بیزې يې هم خوری- چغری-

چغرُو:(چغ-رُو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چغد-

چغره:(چ-غهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- کلک سترګې ښځه- بې شرمه ښځه-

چغری:(چغ-ری)اسم- مؤنث- (۱)وګورئ جانجی- (۲)وګورئ چغرکه-

چغړبه:(چغ-ړه-به)اسم- مؤنث- (۱)شور او غوغا- شور زوږ- غلبله- دپکه- دپکه شپکه- پټکه- لوپه بقه- دَ ځلې دوړه دباړ- کوابن- جنګ جګړه- هغه چغه او شور زوږ چې دَ کوابن په نیت وکړے شی- په چا آواز رایستل- اشول- غربېړ- (۲)خرڅ- تاوان- اسراف-

چغړکه:(چغ-ړه-که)اسم- مؤنث- هغه اوړهٔ چې نهٔ پتیره وی او نهٔ خمبیره- پتیرچکه- چکله-

چغړی:(چغ-ړی)اسم صفت- (۱)وګورئ چغزی- (۲)نازک-

چغز:(چه-غز)اسم- واحد- مذکر- کاغذ-

چغزی:(چغ-زی)اسم صفت- (۱)مغزدار- مغز لرونکے- چغړی- جانجی- (۲)نازک- کاغذی- (۳)باری- صادق- اعتباری- (۴)بد او بې مزې آواز-

چغزی:(چغ-زی)اسم- مؤنث- دَ بادامو يا غوزانو چکی- دَ بادام مغز- دَ جوزو مغز- دَ اکوړ مغز- چغچی- چغجی-

چغ سترګے:(چغ-سټر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- کوږ سترګے- کږ سترګے- چوغ سترګے- کچ سترګے- چنګ سترګے- بټ سترګے- بټا-

چغشکی:(چه-غش-کی)اسم- مؤنث- دَ ماشومانو ځنې- دَ ملکانو ځنې-

چغک:(چو-غک)اسم- واحد- مذکر- دَ يو مارغهٔ نوم-

چغکه:(چه-غه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چوغکه-

چغکے:(چ-غهٔ-کے)اسم صوت- د مارغانو يا ماشومانو شور زوږ-

چغل:(چ-غل)اسم- واحد- مذکر- غلبېل- هغه غلبېل چې ارت ارت سوری لری-

چُغل:(چُ-غل)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چغل خور-

چغلبازی:(چ-غل-با-زی)اسم- مؤنث- (۱)چغل خوری- چغل ماری- (۲)چنغول بازی- چنغلبازی- دَ کوژدن نه پس دَ چنغول دَ چنغلې دَ پلار کور ته تلل او هلته دَ هغې دَ مور په صلاح ورسره لیدل کتل کول- نامزدبازی-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکوړ)، ه"(ز-ړه)، هٔ"(پو-بې-دهٔ)

چغلبه:(چُغ-له-به)اسم- مؤنث- وګورئ چغربه-
چغل خور:(چُ-غَل-خور)اسم صفت- دَ دروغو خبره چا پورې تړل او بل ته يې رسول- چغلی مار- چغل- چغلګر- چغليګر- چغلګوز- چوغلګر- چُغلمار- چغلباز- هغه څوک چې چغلی او شېطانی کوي- خبرغل-
چغل خوری:(چُ-غَل-خو-ری)اسم- مؤنث- چغل ماری- اوړنه راوړنه- شېطانی کونه-
چغل مار:(چُ-غَل-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چغل خور-
چغل ماری:(چُ-غَل-ما-ری)اسم- مؤنث- وګورئ چغل خوری-
چُغله:(چُغ-له)اسم- مؤنث- وګورئ چغلی-
چغله:(چَغ-له)اسم- مؤنث- دَ يو څيز دَ وُردوالی او سور (وُچتوالی) اندازه-
چغلی:(چُغ-لی)اسم- مؤنث- غيبت- پشی شا خبرې- چغل خوری- شېطانی- چغله- چوغله-
چُغلی خور:(چُغ-لی-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- چغل خور- دَ يو بل پهٔ سر چُغلی کونکے- وړهٔ راوړهٔ کونکے- دَ يو بل پهٔ سر خبرې کونکے- چې دَ يو خبره بل ته وړی- مؤنث چغلی خوره-
چغماچغ:(چَغ-ما-چَغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)غجلی- غنجل باز- غنچل بيکه- باڼيچغ- باړيچغ- يو قسم لوبه- (۲)دَ لرګی اَس-
چغمته:(چَغ-مهٔ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ داتوره-
چغمټ:(چَغ-مَټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)څرب- چاق- چاغ- چټک- (۲)هغه څوک چې دَ سترګو سپين يې زيات وی- (۳)دَ هغه اُړو ووړی چې خمبيره شوي نهٔ وی- (۴)سخت او کلک- چغمټن-
چغمټن:(چَغ-م-ټن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چغمټ- (۲)کلک سخت- (۳)لانجه مار- جنجالی-
چغمټه:(چَغ-مهٔ-ټه)اسم- مؤنث- سخته پټيره ووړی-
چغمغی ټوپک:(چَغ-م-غی-ټو-پک)اسم- واحد- مذکر- سخوړ ټوپک- چکمک ټوپک- چقماقی ټوپک-
چغن:(چَ-غَن)اسم صفت- واحد- مذکر- سپورځلے- بدخويه- تريخ- سپور ژبے-
چغندر:(چَ-غَن-در)اسم- مذکر- وګورئ چقندر-
چغنزی:(چَ-غَن-زی)اسم صفت- جانجی- چغزی- چغژی- دَ مټاک ضد-
چغنيوال:(چغ-نی-وال)اسم- واحد- مذکر- نداپ- پانوتی-
چغنه:(چَ-غَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چغنے-
چغنے:(چَ-غهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ زانې پهٔ شان دَ وړدې غرانګې مارغهٔ-
چغنے:(چَ-غهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې دَ پومبې نه پوندانه بيلوی- هغه آله چې دَ ګنی نه رس وباسی- الاچی- حلاجی- ګانی- چغنه-
چغ و پغ:(چغ-وَ-پغ)اسم صوت- چغ و پغ- شور زوږ- کش و کروپ- شورماشور- چغې چغارې- غالمغال- چغ و پغ- چغ چغ- هله ګله- چغ و چغ- غوغا-

چغ و پغ:(چَغ-وَ-پغ)اسم صوت- وګورئ چغ وپغ-
چغورل:(چَغو-رل)مصدر متعدی- سانل- بچ کول- خلاصول- ژغورل-
چغوړ:(چَغ-وَړ)اسم- مذکر- دَ ماشومانو يو قسم لوبه-
چغول:(چهٔ-غه-وَل)مصدر متعدی- (۱)ژړول- چينګول- چنګول- (۲)ځورول- پهٔ عذابول- تنګول- کړول-
چغولی:(چهٔ-غو-لی)اسم- مؤنث- وګورئ چغلی-
چغولے:(چهٔ-غه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چغولی- مؤنث چغولې- وګورئ چغول-
چغون:(چهٔ-غه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چغول-
چغوندے:(چَ-غون-دے)اسم- واحد- مذکر- شغه تېرهٔ لرګے چې ګازرې (زردکې) پرې وبستے شی- کرندے- (افغانستان)-
چغونکے:(چهٔ-غه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چغونکی- مؤنث چغونکې- وګورئ چغول-
چغونګ:(چهٔ-غه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چغول-
چغونه:(چهٔ-غه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چغول-
چغوهٔ:(چهٔ-غه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چغول-
چغوڼا:(چهٔ-غو-ڼا)اسم- ژاوله- ژوغله-
چغونيا:(چهٔ-غون-يا)اسم- (۱)خرابې ژاولې- چوخنې ژاولې- (۲)چخونيا-
چغه:(چهٔ-غه)اسم- مؤنث- دَ سپی دَ شرلو آواز- دَ سپی دَ کورې کولو آواز- دتکارنه- چخې کونه-
چغه:(چهٔ-غه)اسم صوت- (۱)کريکه- کريغه- نعره- کوکه- غږ- ناره- وُچت آواز- چغه- مېه- تېز آواز- (۲)پهٔ چا پسې پهٔ شريکه وتنه- غلو يا ډاکوانو پسې دَ خلقو وتنه- (۳)چغه- جمع چغې-
چغه:(چَ-غه)اسم- واحد- مؤنث- چوغه- قبا- جمع چُغې-
چغار:(چغ-مار/چهٔ-غار)اسم صوت- (۱)دَ مرغيو آوازونه- چغار- (۲)اُوچت او تېرهٔ آواز- تېز آواز- (۳)دَ شرغ آواز- (۴)دَ دروازې دَ پرله پسې پورې کېدو او خلاصېدو آواز-
چغې:(چهٔ-غې)اسم صوت- (۱)چخې- دَ سپی شړنه- (۲)دَ چغه جمع-
چغې چغارې:(چهٔ-غې-چهٔ-غا-رې)اسم صوت- هاهو- شور شغرب- شور شغب- چغارې- زوږ- چغې کريغې- غوغا- نارې سورې- چغې کريکې- درز غپ- غل غوبل- داسې زوږ چې چغې او کريکې پکښې خېژی-
چغېدل:(چهٔ-غې-دَل)مصدر لازم- (۱)شور کول- زوږ کول- غالمغال کول- (۲)چغار کول- (۳)پهٔ چغو چغو ژړل- (۴)لږ جنګ کول-
چغېدلے:(چهٔ-غې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چغېدلی- مؤنث چغېدلې- وګورئ چغېدل-
چغېدن:(چهٔ-غې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چغېدل-
چغېدنګ:(چهٔ-غې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چغېدل-
چغېدنه:(چهٔ-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چغېدل-

چغېدونکے:(چهٔ-غې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چغېدونکي- مؤنث چغېدونکې- وګورئ چغېدل-

چغېدهٔ:(چهٔ-غې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چغېدل-

چغې کریغې:(چهٔ-غې-کرې-غې)اسمِ صوت- دَ چغو او ژړا تېرهٔ تېرهٔ آوازونه- چغې چغارې- ژړا انګوله- نعرې سورې- هائ کوکارې- شور او شر-

چغې میر:(چهٔ-غې-میر)اسم- واحد- مذکر- دَ جنګ یا آفت یا دَ حملې پهٔ وخت دَ پلې دَ مشر آواز- دَ چغې مشر- دَ چغې مشری کونکے-

چغے:(چُ-غے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- تنګ سترګے- چوچے- چوغے- چوغ- چوغ سترګے-

چغی تندے:(چ-غی-تن-دے)اسم- دَ ماشومانو یوه لوبه-

چف:(چُف)اسمِ صوت- (۱)دم- کوف- پوکے- پوکونه- پوک- (۲)دم درود- دم درهه- (۲)دَ دمولو اواز-

چفا:(چُ-فا)اسم- مؤنث- خاموشي-

چف چف:(چُف-چُف)اسمِ صوت- دَ دم ونیلو او چف پرله پسې آوازونه- دَ دم کولو آواز-

چفتی:(چُف-تی)اسم- جمع- مذکر- نری نری لرګی چې پهٔ کړکۍ کښې دَ شیشو دَ ټینګېدو دَ پاره لګولے کیږی- چوفتی- چوتی- شفتی- شپېتی-

چفتی:(چُف-تی)اسم- چوبی یا دَ لرګی مسطر- چپلیته پټۍ چې کرښې پرې راکاږی- پیمانه- چِپټی- (افغانستان)-

چفول:(چ-فه-وَل)مصدر متعدی- چوفول- دمول- دم کول- چف کول- چوف کول-

چفون:(چ-فه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چفول-

چفونکے:(چُ-فه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چفول-

چفونګ:(چ-فه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چفول-

چفونه:(چ-فه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چفول-

چفوهٔ:(چ-فه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چفول-

چفېدل:(چ-فې-دل)مصدر لازم- چوفېدل- دمېدل- چف کېدل- دم کېدل-

چفېدن:(چ-فې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چفېدل-

چفېدنګ:(چُ-فې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چفېدل-

چفېدنه:(چ-فې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چفېدل-

چفېدونکے:(چ-فې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چفېدونکي- مؤنث چفېدونکې- وګورئ چفېدل-

چفېدهٔ:(چ-فې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چفېدل-

چق:(چَق)اسم- واحد- مذکر- دَ نچو، کانو یا نل نه جوړه پرده چې دروازو ته لګولے شی- چک- پرده-

چقانی:(چ-قا-نی)اسم- مؤنث- چکنی- چټنی-

چقر:(چ-قر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چغر-

چقړ:(چ-قړ)اسم- (۱)چکړې- چیکړ- چقړې- خټې- لمدې خاورې چې دَ پښو سره اخښلے شوی وی- چقړوبه- لوند خوشت- چې خټې خټې وی- (۲)چپت پیت- وهلے کوټلے- (۲)دَ چرګې ککړې-

چقړ:(چ-قر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چغر-

چقړوبه:(چَق-رو-به)اسم- مؤنث- چیکړې- چکړې- نرمه ګاره- چقړې- دَ اُبو نرمه ګاره-

چقره:(چ-ق-ره)اسم- مؤنث- (۱)چیکره- چکره- خټې- چیکړ- چکړاړ- (۲)ککره- دَ چرګې نارې-(۲)دَ زرکې نارې- ققره-

چقړې:(چ-قه-رې)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګورئ چقړ-

چقماق:(چَق-ماق)اسم- واحد- مذکر- (۱)پښبکر- چقمق- بکوره- یو قسم سپین کاڼے چې دَ پښو سره ئې جنګوی او دَ اُور سپرغی ترې خیژی- چقمن- بکر- بکره- بکری- (۲)چخ مخ- چخ مخے-

چقمق:(چَق-مَق)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چقماق-

چقمقی:(چَق-مه-قی)اسم- واحد- مذکر- (۱)سخوړ- یو قسم ټوپک- (۲)دَ چقمق سره متعلق-

چقندر:(چ-قن-در)اسم- جمع- مذکر- دَ ټیپرو یو قسم چې چینی ترې ایستے شی- چغندر- جوغندر- لبلبو- نباتاتی نوم ولګېرس (VULGARIS)-

چقول:(چ-قه-وَل)مصدر متعدی- (۱)چتی کول- چیتول- چیت پیت کول- (۲)وهل ټکول-

چقولے:(چ-قه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع چقولی- مؤنث چقولې- وګورئ چقول-

چقون:(چ-قه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چقول-

چقونکے:(چ-قه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چقونکي- مؤنث چقونکې- وګورئ چقول-

چقونګ:(چ-قه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چقول-

چقونه:(چ-قه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چقول-

چقوهٔ:(چ-قه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چقول-

چقېدل:(چ-قې-دل)مصدر لازم- (۱)چتی کېدل- چیتېدل- چیت پیت کېدل- (۲)وهلے کېدل- ټکېدل-

چقېدلے:(چ-قې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع چقېدلی- مؤنث چقېدلې- وګورئ چقېدل-

چقېدن:(چ-قې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چقېدل-

چقېدنګ:(چ-قې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چقېدل-

چقېدنه:(چ-قې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چقېدل-

چقېدونکے:(چ-قې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چقېدونکي- مؤنث چقېدونکې- وګورئ چقېدل-

چقېدهٔ:(چ-قې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه-

وګورئ چقېدل-

**چک**:(چَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)د دروازې د پاره وژغنو نه جوړ شوے چکمن- چکړې- (۲)د مچیو کور- چګرګینے- شرګنے- چته- ړومبکے-(۳)ټک- حمله- په غاښونو چیچنه- (۴)خاپ- (۵)د کټ لنګه- (۶)د زمکې یوه لویه ټوټه-(۷)غنډ ځیزونه- یو ځاې پراته ځیزونه- (۸)هغه اګې چې څوکه ئې ماته وي-

**چک**:(چَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه د سېمټو او باجرې نه جوړ ګول حلقه چې کومے پرې پخولے شي- (۲)هغه لرګي چې د کومې د مضبوطولو د پاره د کومې په تل کښې ایښوے شي او د پاسه پرې دېوال خېژولے شي-

**چک**:(چَک)اسم صوت- د نا آواز- د انکار آواز-

**چک**:(چَک)اسم- واحد- مذکر- د کیو، کجورې یا د نل نه جوړه پرده چې دروازو او کړکیو ته ځوړندولے شي- پرده- چق- (۲)د بېنک مخصوص چاپ شوے کاغذ(رسید)د کوم په ذریعه چې اکاونټ لرونکے خپل رقم د بېنک نه راوېستے شي-

**چک**:(چَک)لاحقه- یوه لاحقه ده چې د صفتونو په اخر کښې لګولے کیږي- لکه حرام چک-

**چکاچک**:(چَ-کا-چَک)اسم صوت- په جنګ کښې د تورو چلېدو آواز- ټس ټوس- خرس خروس- ټسار- (م- فارسی)-

**چکاک**:(چَکاک)اسم- ښاک- چښنه- ښنه- چښنه- چښل- څکنه- څکاک-

**چکاک**:(چَ-کاک)اسم- لیکل- نوشته کونه- لیک کونه- لیکنه- نوشته-

**چکاله**:(چَ-کا-له)اسم- واحد- مذکر- ځادر- تازر- ټیکرے-

**چکالے**:(چَکا-لے)اسم- واحد- مذکر- ښاپېرک- چمبېرک- څکالے- څکالکے-

**چکالے**:(چَ-کا-لے)اسم- واحد- مذکر- څکالے- منجامه- د پلاسټک وړه ټوټه چې د ماشومانو د توشک د پاسه اچولے شي- دغه ټوټه توشکې د لوندېدو نه بچ کوي-

**چکالے**:(چَ-کا-لے)اسم- واحد- مذکر- ځادر- مردانه ځادر- لوپټه- دوپټه-

**چکاوه**:(چَ-کا-وه)اسم- شربت- د قندو شربت- خوروبے- (م- فارسی)-

**چک برک**:(چَک-برَک)اسم- منګې لګونه-

**چک په چک**:(چَک-په-چَک)اسم مرکب- صفت- ګرد چاپېر- چک چاپېر- ځاې په ځاې- هغه کورونه چې ګڼ او نښتي پراته وي- یو ځاې نښتي-

**چک پېچه**:(چَک-پې-چه)اسم- واحد- مؤنث- پېروته- پېروتې-

**چک چاپېر**:(چَک-چا-پېر)اسم مرکب- صفت- وګورئ چک په چک-

**چک چک**:(چَک-چَک)اسم صوت- (۱)اوشه- هشه- ووشه- هوشه- ښ- د خره د شړلو آواز- خرې- (۲)لاسونه پړقول- جمع چکچکې-

**چک چکه**:(چَک-چَ-که)اسم- لاسونه ټکونه- لاسونه پړکونه- لاسونه وهنه- د خوشحالۍ په وخت کښې لاسونه پړکول- تاړې- چکچکې- چکچکې- چاکړې- چکړې-

**چکچکه**:(چَک-چه-که)اسم- (۱)هغه پړقېدونکې ستاره چې جامو باندې د ږول سینګار د پاره لګولے کیږي- پنې- دانې- ستاره- (۲)کنګوسه-

**چکچکې**:(چَک-چه-کې)اسم- چک چکه- وګورئ چک چکه (۱)- (۲)د سپرلي برګه غندې مرغکې-

**چکچکې**:(چَک-چه-کې)اسم- وګورئ چکچکه-

**چکچور**:(چَ-که-چور)اسم- واحد- مذکر- مؤنث چکچوره- الم غلم- چکوره-

**چکر**:(چَ-کر)اسم- واحد- مذکر- (۱) دائره- حلقه- (۲)سېل- هواخورې- د باندې ګرځېدنه- (۳)سر ګرځېدنه- (۴)ګردش- تاوېدل- ګرځېدل- (۵)لیونتوب- بادسارې- (۶)پیا- (۷)داؤ- (۸)دور- (۹)غنډ سړک- جمع چکرې-

**چکر**:(چکر)اسم صوت- د بزې د رابللو آواز- چکې چکې- اچه اچه- چې چې- کرې کرې- چکرې- چکړ-

**چکرې**:(چَک-رې)اسم صوت- وګورئ چکر-

**چکرې**:(چَ-که-رې)اسم صفت- واحد- مذکر- سېلانے- سېل کونکے- چکر وهونکے-

**چکرې**:(چَک-رې)اسم- وګورئ چکلې-

**چکړ**:(چَ-کړ)اسم- ختې- چقړې- چیکړ- چکړې- چکړاؤ- چقړ-

**چکړ**:(چَ-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چقړ-

**چکړ**:(چَ-کَړ)اسم صوت- چکې چکې- اچه اچه- چې چې- د بزې د رابللو آواز-

**چکړاؤ**:(چَک-راؤ)اسم- (۱)چقړه- چیکړه- چیکړې- چیکړ- هغه خټه چې اُبه پکښې ډېرې وي- چکړ- خټه- (۲)وګورئ چړکاو-

**چکړبه**:(چَک-ړ-به)اسم- (۱)خټه- چکړ- (۲)غوبمه- جکړه-

**چکړن**:(چَک-ړن)اسم صفت- وګورئ خټولن- ختې ختې- په خټو لړلے-

**چکړه**:(چَک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ټرک یو قسم چې درونډ سامان پکښې وړلے راوړلے شي- (۲)د ربل پبه-

**چکړې**:(چَ-کَه-ړې)اسم صوت- چقړې- ککړې- ققړې- د چرګې یا زرکې نارې (آوازونه)-

**چکړې**:(چَک-ړې)اسم- واحد- مؤنث- چک- (۱) د وژغنو چپنه- هغه چکمن چې د بزې له وژغنو څخه جوړیږي- (۲)غنډه- پېړه- دلې- ډېرې- غټے- غنډورے- چکې-

**چکړے**:(چَک-ړے)اسم- سره د مهو پخې شوې وریژې- کیچړے- کچړے- چیکړے- کووت وریجې-

**چکس**:(چَ-کس)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ښکاری مارغانو خصوصاً د باز د ناستې ځاې- چکس- (۲)ټټر- سینه- (م- فارسی)-

**چکس**:(چَکس)اسم- عیب- نقصان- نکته- خو- ټک- عیب لټول- په یو څیز کښې خو راایستنه-

**چکش**:(چَ-کَش)اسم- واحد- مذکر- چېټک- چټک- څټک- (م- فارسی)-

**چکښو**:(چَک-شو)اسم- څکښو- چاکسو- څابکو- څښکو- د یوې یونانی

ئ (څې-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پیا-لې)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

دوانی نوم-

چکله:(چک-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناحیه- چم- منطقه- (۲)یو څهٔ ابهٔ-
لوی ابهٔ- (۳)وګوری چغرکه- (۴)لاری- لاری موټر- (۵)رنډی خانه-
فاحشه خانه- (۶)رنډه- ولکه- جمع چکلې-

چکله:(چک-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ منداڼو دَ لرګی مغه لاندینے سر چې
پهٔ چاټی، کټوی یا، مټ کښې پروت وی- (۲)دَ پېړو جوړلو پلنه تخته-

چکله:(چک-له)اسم- واحد- مؤنث- چکلی- یو ګلے- دوه ګلے- درې ګلے-
څلور ګلے- اشارت- دَ ماشومانو یوه لوبه- دَ میرکاټ یا میرکاټهٔ پهٔ ډول
لوبه-

چکلی:(چک-لی)اسم- واحد- مذکر- دَ نسوارو ډبے چې عموماً پکښې دَ مخ
کتو دَ پاره آئینه وی-

چکلې:(چک-لې)اسم- مؤنث- وګوری چکلی-

چکلېټ:(چک-لېټ)اسم- واحد- مذکر- وګوری چاکلېټ-

چکلۍ:(چک-لۍ)اسم- مؤنث- (۱)دَ اَرټ لوئ څرخ- (۲)چکله- اشارت- دَ یوې
لوبې نوم- (۳) پلن او غنډ مخ- (۴)خارخوړی- خارخوټې- ګرداب-
ګرداؤ- ګڼ- ول-

چکلی:(چک-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)چکلې- دَ تیلې او تار مغه
ککوړے نما شان څیز چې زیاتره پهٔ امېلونو کښې جوړولے شی-
(۲)ککوړے-

چکمار:(چک-مار)اسم- مذکر- (۱)چارے- (۲)چک لګونکے (صفت)

چکمک:(چک-مک)اسم- مذکر- وګوری چقمق-

چکمن:(چک-من)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګونځې- کوړیتی- ګونجې- (۲)چپن
چپنه- وړین چپن- وړینه چپنه- وړینه چوپانه- چکمنه-

چکمنه:(چک-مهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری چکمن-

چکمه:(چکهٔ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ساقدار بوټان- مغه بوټان چې تر
ګیټو پورې وی- (۲)کوځے- لنډه کوځه- وړه، لنډه او وړینه چپنه-
(۳)موزه-

چکن:(چ-کن)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)مغه کپړه چې پهٔ ستنه پرې ګل
بوټی جوړ شوی وی- (۲)دَ ستنې کار- سوزن کاری- کشیده- زردوزی-
قلم کاری- ګلکاری- دَ سکوی سپرغې- پیاخله- پیاخړه-

چکنا چکنی:(چک-نا-چک-نی)اسم مرکب- یو قسم جوړه مارغان دی چې یو
نر او بل ښځه وی دَ ورځې یو ځاۍ خو دَ شپې دَ یو بل نه بېلیږی-
سرخاب- سره ميلي- چکوا چکوی- (م- منڊی)-

چکن دوز:(چ-کن-دوز)اسم صفت- واحد- مذکر- سکوی سپرغې کونکے-
خامکار- پهٔ کپړه باندې ګل بوټی جوړونکے- چکنی-

چکن دوزی:(چ-کن-دو-زی)اسم- مؤنث- دَ چکن جوړولو کار- ګلکاری- ګل
دوزی-

چکنی:(چک-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګوری چکنې-

چکنی:(چه-که-نی)اسم صفت- واحد- مذکر- قلم کار- چکن دوز-

چکنې:(چک-نې)اسم- واحد- مؤنث- مغه خوراک چې دَ ټماټرو، پیازو، دنیا،
ویلنی، مالګې، مرچکی او نورو تروو او تروشو څیزونو نه تیارولے شی-
چټنې- چټنی- چکنی- چټنی- تریونګی- چقانی- چټنی-

چکنې:(چک-نې)اسم صفت- (۱)پېړه- مهینه- پسته- (۲)مغه خولۍ چې ډېرې
بخې پرې وهلے شوی وی-

چکو:(چ-کو)اسم تصغیر- واحد- مذکر- لاسکے- وړوکے لاس- کوچنے لاس-
چاچی- دَ وړو لاس- دَ زړو پهٔ ژبه لاس ته وائی-

چکو:(چ-کو)اسم صفت- واحد- مذکر- چپے- کسے- کس لاسے- چپ لاسے-
کیڼ لاسے-

چکو:(چ-کو)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګوری چاکو-

چکوتره:(چ-کو-ت-ره)اسم- مؤنث- (۱)دَ لیمو یو قسم چې پوستکے یې نرے
او خوږلوړے وی- ګلګل- نباتاتی نوم سټرس ډیکومانه (CITRUS
DECOMANA)- (۲)یو قسم کپړه چې پرې دَ ستورو او سپوږمۍ سرهٔ او
سپین تصویرونه جوړوی- جمع چکوترې-

چکوچکو:(چکو-چکو)اسم صوت- دَ وړوکی سخی دَ رابللو آواز- سکوړے
سکوړے- چکوړے چکوړے- کوړے کوړے-

چکور:(چ-کور)اسم صفت- واحد- مذکر- چکوره- چالاک- تېز-

چکور:(چه-کور)اسم- واحد- مذکر- زرک جمع زرکان-

چکور:(چ-کور)اسم- واحد- مذکر- دَ موسیقۍ دَ یو تال نوم- دَ ۲۸ ماترو
څخه جوړ دَ یو تال نوم-

چکورکی:(چ-کور-کی)اسم- مؤنث- چالاکی- زیرکی- تېزی-

چکوره:(چکو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چامغول- ارغه- برندکاغ- روۍ-
اراده- (۲)چالاکه- تېزه- زیرکه-

چکوړے:(چ-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- بچے- جمع چکوری-

چکوړ:(چ-کوړ)اسم صوت- چکوړه- سکوړه- چکوړې- دَ سخی دَ شړلو یا
رابللو آواز- سکوړې-

چکوړ:(چ-کوړ)اسم- واحد- مذکر- خوسکے- خوسے- سخے-

چکوړې:(چ-کو-ړې)اسم صوت- څکوړې- دَ سخی دَ شړلو آواز-

چکوړے:(چکو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سخے- خوسے- خوسکے- څکوړے-
سخوړے- چکوړکے- (۲)دَ سخی دَ شړلو آواز- چکوړ- (اسم صوت)-

چکوندی:(چکون-دی)اسم- واحد- مؤنث- وګوری چکونډی-

چکونډی:(چکون-ډی)اسم- واحد- مؤنث- څکونډاره- نوکاره- څکونډی-

چکه:(چ-که)اسم- مؤنث- (۱) ماستهٔ- چکیده- (۲)پتیره ډوډی-

چکه:(چ-که)اسم- مؤنث- چاپېره- څېږه- څپړه- (۲)دوکه- فرېب- چل- چم-
چل ول-

چکه:(چهٔ-که)اسم صوت- چکې- چوچکې- چې- اچه- اچې- دَ بزې دَ شړلو
آواز-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

چکه:(چَ-که)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)تجربه کار غل- تجربه لرونکے غل- هغه غل چې په غلا کښې ې ډېره تجربه شوې وی- (۲)یو قسم ازغن بوټے- (۳)پوخ- تجربه کار-

چکه:(چَ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لاس- پنجه- منګل- (۲)چخله- چخونے-

چکه چکه:(چِه-که-چِه-که)اسمِ صوت- دَ بزې دَ رابللو آواز- چکو چکو-

چکه چور:(چه-که-چور)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بدمعاش- بدماش- اوباش- غنډه- ایله ګرد- (۲)کنجوس- سخت- (۲)ټګ- غل-

چکه دانه:(چَ-که-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- یو خېلي دار بوټے چې سرې سرې دانې نیسی-

چکی:(چَ-کی)اسمِ صوت- لاس ټکونه- چک چکی- لاس ټپونه- چکې وهنه- لاس پرکونه- چک چکې-

چکې:(چَ-کې)اسم- جمع- وګورئ چکی-

چکې:(چِه-کې)اسم صوت- (۱)دَ خسی دَ شړلو آواز- (۲)دَ بیزې دَ شړلو آواز. کچې-

چکېده:(چَ-کې-ده)اسم- مؤنث- (۱)ماستهٔ- چکه- دَ مستو او شوملو چکه- (۲)څڅېدلې ډوډی- هغه ډوډی چې په تنور کښې څڅېدلې وی- بهېدلې ډوډی-

چکی:(چَ-کی)اسم صفت- (۱)ښانسته- پېمخې- ښکلې- ښانسته- (۲)چاغ- په غوښو ډکه- څربه- تیاره- شلنده-

چکی:(چَ-کی)اسم-واحد/جمع- مؤنث- (۱)ړوکے- دَ وچې مېوې مغز- (۲)دَ کډ لم- دَ کډ دُمبال-

چکی:(چِه-کی)اسم- واحد- مؤنث- جینی- نجلی- جلکی-

چکی:(چَ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ لرګی جوړه کندی چې په مېنځ کښې ې دَ تمبو چوړونه ګرځی راګرځی او دواړه خوا په درشل کښې لګېدلی وی- (۲)په جېل کښې هغه تنګه او وړه کوټه چې دَ قاتل یا دَ لوئ جرم قیدی دَ پاره مخصوصه وی-

چکی:(چَ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ ژرندې پل- (۲)څرخی- ګرز- دَ اُسپنې یوه آله چې دَ لوهار دوکان کښې باټ سره جخته لګېدلې وی او دَ نائیانو اوزار وغېره پرې تېرهٔ کولے شی-

چکی:(چَ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کلچه- دَ کلچې په شان غنډ منډ- ټیکی- ککوړے- ګرده ډوډی- (۲)دَ کرې چکی- دَ صابون چکی- (۲)دَ اُبو غوړغوړی- دَ اُبو غورغوړی- (جوړول- جوړېدل- کېدل مصدرونه)-

چکی سرې:(چَ-کی-س-رې)اسم مرکب- مؤنث- هغه امسا چې سر ې غنډ وی- کونټې- ښېنت- امسو- امسا-

چکی سرے:(چَ-کی-س-رے)اسمِ مرکب- مذکر- وګورئ چکی سرې-

چک:(چک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)جګ- لوړ- عالی- پاس- هسک- دنګ- وُچت- لوړ چېږ- لوړ دنګ- (۲)آسمان-

چکټ:(چَ-کټ)اسم- مذکر- دَ پونبې تخم- پُندانه- پوندانه- پنبه دانه- چکت-

چکس:(چَ-کس)اسم- مذکر- (۱)هغه لرکے چې باز او باښه وربانده کښېنی- چکس- (۲)هغه دوه لرکی چې ګډ سرے ې دَ ترخ لاندې نیسی او دَ دغې لرکیو په مدد سره ګرځی- ډانګورې- ډانګوری-

چګل:(چَ-ګل)اسمِ صفت- واحد- مذکر- چوګل- (چوں ګل) دَ ګل په شان- (م- فارسی)-

چکن:(چَ-کن)اسم- وګورئ چکڼ-

چکڼ:(چَ-کڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ یو طبی بوټی نوم- (۲)وګورئ پیاخله-

چکوچکو:(چِ-کو-چِ-کو)اسم صوت- وګورئ چکه چکه-

چکول:(چِه-که-ول)مصدرِ متعدی- (۱)جګول- وُچتول- پورته کول- ولاړول- پاڅول- ویښول- (۲)تحریکول- لمڅول- لمسول-

چکون:(چِه-که-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ چکول-

چکون:(چَ-ګون)اسم- واحد- مذکر- دَ چینار په شان یوه وُنه چې څاروی ې پاڼې نهٔ خوری-

چکونکے:(چِه-که-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چکونکی- مؤنث چکونکې- وګورئ چکول-

چکونګ:(چِه-که-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چکول-

چکونه:(چِه-که-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چکول-

چکوهٔ:(چِه-که-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چکول-

چکه:(چِه-که)اسم- واحد- مؤنث- جګه- وچته- جمع چکې-

چکه:(چِه-که)اسمِ تصغیر- (دَ ماشومانو په ژبه) سترګه- جمع چکې-

چکه:(چِه-که)اسمِ صوت- دَ بزې دَ راګرځولو آواز- جمع چکې-

چکېدل:(چِه-کې-دل)مصدرِ لازم- (۱)جګېدل- وُچتېدل- پورته کېدل- پاڅېدل- ویښېدل- ولاړېدل- (۲)تحریکېدل- لمسېدل- (۲)ګرېدل- خاربښتېدل-

چکېدن:(چِه-کې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چکېدل-

چکېدنګ:(چِه-کې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چکېدل-

چکېدنه:(چِه-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چکېدل-

چکېدونکے:(چِه-کې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چکېدونکی- مؤنث چکېدونکې- وګورئ چکېدل-

چکېدهٔ:(چِه-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چکېدل-

چل:(چَل)اسم- (۱)ټګی- دوکه- چل ول- دروه- دام- داؤ- فرېب- (۲)حکمت- بنا- هُنر- ترکیب- اټکل- طریقه- (۳)آرټ- (۴)هیله- طمع- اسره- (۵)دشمنی- غلیمی- مخالفت- (۲)دَ کیدړې کور- (۷)ګوزاره- سلوک- (۸)دَ ژرندې ټکټکے- دَ شیطان ټکټکے- (۹)وار- خل- نوبت- (۱۰)دَ برقی یا دَ بېزلی ژرندې مشین- (۱۱)جاری- چالو- جمع چلونه- (کول- کېدل مصدرونه)-

چلاچل:(چَ-لا-چَل)اسم- (۱)دَ سفر تیاری- چل چلا- چل چلاؤ- تلل راتلل- تګ راتګ- (۲)پرله پسې- مسلسل-

چلان:(چَ-لاَن)اسم صفت- جاري- روان- چلاند- چلند- (۲)چورلېدونکے- تاوېدونکے- پهٔ حرکت کښې- مروج- متحرک-

چلاند:(چَ-لاَند)اسم صفت- وګورئ چلان-

چلاندے:(چَ-لان-دے)اسم صفت- چلېدونکے- روان- جمع چلاندي-

چلانه:(چَ-لا-نه)اسم- مؤنث- تول- وزن-

چلاو:(چَ-لاو)اسم- ګوزاره- ګذران- چلېدنه-

چلاو:(چَ-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم رسی چې لهٔ کارېزه پرې ختې راوېستلے کیږي-

چلاو:(چَ-لاؤ)اسم- (۱)وګورئ چلو- (۲)یو قسم نمکین پلاؤ-

چلاوصاف:(چَ-لاؤ-صاف)اسم- واحد- مذکر- دَ دماتو نه جوړه دَ وريژو چڼولو او وینځلو کاسه- چلصاف- چلوصاف- صافي- صاپي-

چلباز:(چل-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- ټګ- دوکه باز- ټګي ژن- غربېي- چلولي- دوکه مار- چلي- ټګي باز- ټګمار- چمباز- چل کونکے- چلناک- اټکلي- ارغاړيز- چلیکر-

چلبازي:(چل-با-زي)اسم- مؤنث- چمبازي- ټګي- ټګماري- دوکه بازي- مکر- فرېب- غولونه- چلوټې-

چل بامداد:(چل-بام-داد)اسم مرکب- ځلوښت سحره- (فارسي)-

چلپټے:(چل-په-ټے)اسم- واحد- مذکر- چل- غوړے- (افغانستان)-

چلتار:(چَل-تاَر)اسم- واحد- مذکر- هغه مزے یا پټۍ چې عربیان یا بعضې ملنګان یې دَ سر دَ رومال دَ پاسه تړي- بندے- چالتار- چېلتار- چلتور- جمع چلتارونه-

چلچل:(چَل-چَل)اسم- (۱) چلچلا- چلاچل- (۲)بیړه- تادي- تلوار- چټکي- (۳)چپې چپې-

چلچلا:(چَل-چَ-لا)اسم- (۱)چلچل- چلا چل- تګ وپو- تګ ودو- (۲)مشغولیت- (۳)ضده

چل چلاؤ:(چل-چَ-لاؤ)اسم- وګورئ چلاچل-

چلخي:(چَل-خي)اسم- مؤنث- دَ ماشومانو یو لوبه- ځرخندوکے-

چلخے:(چَل-خے)اسم- یو قسم ساګ- شلخے- تروکے- شلخي سر-

چلر:(چَ-لر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ساده- ناپوهه- کم عقل- نافهمه- بې عقل- (۲)لوچک- اوباش- بدماش- بدمعاش-

چلروق:(چَل-روَق)اسم- سوکله- پڼې- پېزار- لهٔ اومې څرمنې پهٔ بدوې توکه یو ړزل پاپوښ یا پېزار- (افغانستان)-

چلښت:(چَ-لښت)اسم- (۱)ګوزاره- چلاؤ- چلند- (۲)جاري کېدنه- بهېدنه- (۳)رواج موندنه- رانجېدنه- رائج کېدنه-

چلښت لیکه:(چَ-لښ-تَ-لي-که)اسم مرکب- دَ تلو یا بهېدو لار- رګې-

چلغت:(چَل-غت)اسم- واحد- مذکر- زغره- زره- غزره- زېره- چلقت-

چلغوزه:(چَل-غو-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چلغوزے-

چلغوزے:(چَل-غو-زے)اسم- واحد- مذکر- دَ نښتر دَ وَنې یو قسم وچه مېوه- جنغوزے- جنهغوزے- جلغوزے- زنغوزے- زنغوزے- څغوزے- چلغوزه- نغوزے- چن غوزے- نباتاتي نوم پینس جرارډیانه (PINUS GERARDIANA) -

چلغه:(چل-غه)اسم- دَ وړوالي او لنډوالي اندازه- اندازه-

چلقب:(چَل-قَب)اسم- وګورئ چلغت-

چلقت:(چَل-قَت)اسم- واحد- مذکر- زغره- زېره- زره- چلقته- چلقب- چلقد- چلغت-

چلقته:(چَل-قَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- زغره- غزره- چلقت- چلغت-

چلقد:(چَل-قَد)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چلقت-

چلک:(چَ-لک)اسم- واحد- مذکر- (۱)تیم- (۲)پېپ- (۲)شېرداني-

چلک:(چَ-لک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سخکوړے-

چلکه:(چَ-لَ-که)اسم- مؤنث- دَ اُبو چپه- دَ اُبو څپه- موج-

چلکه:(چَل-که)اسم- واحد- مؤنث- څاڅکے- ټکے- قطره- غټې- جمع چلکې-

چلکرے:(چَل-کهٔ-رے)اسم فاعل- واحد- مذکر- ټغر جوړونکے- لمڅې جوړونکے- دوړ- جمع چلکري-

چلکرے:(چَل-کهٔ-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- چلولي- چلباز- چمباز- چالاک- چلي- چلناک- دوکه باز- پهٔ نخرو پېښو پوهٔ- مداري- پهٔ چلونو او کرتبونو پوهٔ- ټګیژن- مکرژن- دروغلے- جمع چلکري-

چللو:(چَ-له-لاو)اسم- دَ ژرندې ټکټکے- دَ شېطان ټکټکے- دَ ژرندې ړګ ړکے- چلپلو- چلیلو-

چلم:(چَ-لم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خاورو، مسو، دَ شیشې یا دَ بلې مادې نه جوړه یوه آله چې اُبهٔ پکښې اچول کیږي دَ عمودي نل پهٔ سر باندې یې سرخانه(ټوپۍ) ایښودل کیږي او تماکو یا چرس وغیره پکښې څښلے شي- حُقه- چیلم- (۲)زانه- زانے-

چلماري:(چَل-ما-ري)اسم- دَ چل زده کولو پهٔ وخت دَ فوځیانو ډزې- چرماري- چاندماري- چالماري-

چلمچي:(چَ-لم-چي)اسم- واحد- مذکر- هغه لوښے چې لاس پکښې وینځلے شي- لاس وینځونے- لاس پرینځونے- لګن- دوشي- لاس ولونے- دس شوے-

چلمرده:(چل-مَر-ده)اسم- مؤنث- دَ رېشکې پهٔ شان یو بوټے چې دَ سوزولو دَ پاره پکارولے کیږي-

چلم کښ:(چَ-لم-کښ)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې پهٔ چلم څښلو عادت زي- چلمي- چلم څښونکے- دَ چلم عملي-

چل مل:(چَل-مل)اسم- چل زل- چم- ټګي- ټګي برګي- غولونه- فرېب- چل- چل بازي-

چلمي:(چَ-لهٔ-مي)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چلم کښ-

چلن:(چَ-لن)اسم- (۱)چلند- عادت- خوئ- سلوک- کردار- (۲)چلند- تلهٔ راتلهٔ- تګ راتګ- (۳)پهٔ معامله کښې دَ اعتبار وړ- (۴)چلند- روان- جاري- (۵)رفتار- تګ- (۶)رواج- طرز- طریقه- (۷)پهٔ اوښ باندې

زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

بار اچول-

چلنج:(چ-لنج)اسم- (۱)جنګ ته رابلل- مبارزې ته راغښتل- رقابت کونه- (۲)اعتراض کونه- ادعا کونه- (۳)متهمونه- (۴)مطالبه- (۵)حق غښتنه- جمع چلنجونه- (م- انګریزی)-

چلند:(چ-لند)اسم- وګورئ چلن-

چلندغټه:(چ-لند-غو-ټه)اسم مرکب- واحد- مؤنث- هغه غټه چې په اسانی او یو خل راکښلو سره پرانستے شی- د پرتوغاښ غوټه- سسته غټه- ول-

چلندوالے:(چ-لند-وا-لے)اسم مرکب- جاری کېدنه- رواج موندنه- رواجېدنه- چلښت-

چلندول:(چ-لن-د-ول)مصدر متعدی- رواج ورکول- جاری کول- رواجول-

چلندون:(چ-لن-د-ون)حاصل مصدر- وګورئ چلندول-

چلندونکے:(چ-لن-د-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چلندونکی- مؤنث چلندونکې- وګورئ چلندول-

چلندونګ:(چ-لن-د-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چلندول-

چلندونه:(چ-لن-د-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چلندول-

چلندوۀ:(چ-لن-د-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چلندول-

چلنده لار:(چ-لن-ده-لار)اسم مرکب- واحد- مؤنث- عامه لار- جاری لار- چالانه لار- عمومی لار- د تګ راتګ قابله لار- بادشاهی لار- باچاهي لار-

چلندی:(چ-لن-دی)اسم صفت- جاری شوے- رواج شوے- رواجی- مروج- چې رواج يې موندلے وی-

چلندېدل:(چ-لن-دې-دل)مصدر لازم- چلېدل- رواج کېدل- چلند کېدل- رواجېدل- جاری کېدل- مروج کېدل- مروجېدل-

چلندېدن:(چ-لن-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چلندېدل-

چلندېدنګ:(چ-لن-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چلندېدل-

چلندېدنه:(چ-لن-دې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چلندېدل-

چلندېدونکے:(چ-لن-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چلندېدونکی- مؤنث چلندېدونکې- وګورئ چلندېدل-

چلندېدۀ:(چ-لن-دې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ چلندېدل-

چلنه:(چ-لۀ-نه)اسم- مؤنث- اصطلاح- اصطلاحی خبره-

چلنی:(چ-ل-نی)اسم- مؤنث- (۱)چلېدنه- جاری کېدنه- چالانېدۀ- (۲)د چالانېدو تېکس- (۳)چې خلق پرې چلن کوی- د تګ راتګ لار- عامه لار- د تلو راتلو لار- (۴)اصطلاحی- رواجی- بازاری- رسمی- قانونی-

چلنے:(چ-ل-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- په چلند- روان- په تلو کښې-

چلن:(چلن)اسم صفت- توې- پاشلے- شندلے-

چلو:(چ-لو)اسم- چلاؤ- هغه وریژې چې پیاز ورته لا نۀ وی سرۀ شوی او لا رنګ نۀ وی ورکړے شوے- چلونه- سپینې وریژې-

چلوانی:(چل-وا-نی)اسم- مذکر- یو قسم ازغن بوټے چې نری نری پاڼې لری او ساګ ترې پخولے شی- چولانی- چلونی- چلویرے- سارمکی- تاندوره- چیلو- سرګلې- رنخله نباتاتی نوم ایمبرنتهس پولی ګېمس (AMARANTHUS POLYGAMUS)- یا ایمپرنتهس ګرېسی لس (AMARNTHUS GRACILIS)-

چلوټه:(چل-و-ټه)اسم- چل ول- فرېب- غولونه- تېرایستنه- مکر- دوکه- مکرفرېب- ټګی- ټګماری- په دروغو- په دوکه- د دوکې کار- ټګی ټوری- د چل نه ډک- د چل ول او ټګۍ ډک کار-

چل وټه:(چل-و-ټه)اسم- راشه درشه- سلوک- ګوزاره- وخت تېرونه-

چلور کشته:(چ-لور-کش-ته)اسم- چوکور- څلور کونجیز-

چلورے:(چ-لو-رے)اسم- مذکر- یو قسم ساګ-

چلوس:(چ-لوس)اسم- چاړا خله- تت ژبې-

چلوښه:(چل-و-ښه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چلومبه-

چل ول:(چل-ول)اسم- (۱)ټګی برګی- ټګی ټوری- مکر- فرېب- (۲)چل- هغه دغه- دروغ- چلبازی- چمبازی- انې بانې- (۳)ګوزاره کول- وخت تېرول-

چلول:(چ-له-ول)مصدر متعدی- (۱)رواجول- جاری کول- رواج ورکول- (۲)حرکت ورکول- روانول- مشین روانول- (۳)ېزې کول- پرله پسې ېزې کول- د یو ځایٔ نه بل ځایٔ ته وړل- (۴)د سوداګری د پاره د یو ځایٔ نه بل ځایٔ ته تلل را تلل- (۵)استعمالول- (۶)بدکاری کول- بدفعلی کول- (۷)اداره کول- قابو کول- (۸)بوتلل- بوول- بیول- (۱۰)شائع کول- مشهورول-

چلولی:(چل-و-لی)اسم صفت- واحد- مذکر- دوکه باز- ټګ- چلباز- فرېبی- چلبوز- چلناک- چمباز- چلګرے- مکار- اټکلی- خرټه- چلیګر-

چلولے:(چ-له-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چلولی- مؤنث چلولې- وګورئ چلول-

چلولے:(چ-لو-لے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- د ماشومانو ډکه- ذکر- پچی- د ماشوم څوخی- جمع چلولی-

چلومبه:(چلوم-به)اسم- واحد- مؤنث- مچلوغزه- مېچنوغزه- مېچېنوغزه- مچوغنه- مچنوغه- موچوغه- مشنوغزه- مچوغنده- شلوغزه- مچوغښه- چلوښه- جمع چلومبې-

چلون:(چ-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ چلول-

چلون:(چ-لون)اسم- واحد- مذکر- روش- چلښت- رفتار- چلند- ګزاره- وخت تېرے- ګزران-

چلونکے:(چ-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چلونکی- مؤنث چلونکې- وګورئ چلول-

چلونګ:(چ-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چلول-

چلونه:(چ-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چلول-

چلوېرے:(چل-وې-رے)اسم- مذکر- وګورئ چلوانی-

چلوښتے:(چل-وښ-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې د پټی د مالک په ځایٔ زمکه اېنۀ کوی-

چله:(چِ-له)اسم- مؤنث- (۱)والی- لختی- برغوزی- ډیډی- برغټی- مندری- مونډری- دَ نارینوُ دَ غوږ والی- دَ سړی دَ غوږ دَ سپینو زرو کړی- (۲)چپه- موج- (۳)سېلاب- طوفان- نیز- نیسوز- طغیانی- دَ سېلاب راوړې واړهٔ لرګی او خځله-

چله:(چِ-له)اسم- مؤنث- ګوزاره- ګوزران- وخت تېرې-

چله:(چِ-له)اسم- مؤنث- خلوت- څېله- چېله- څله- دَ عبادت دَ پاره څلوېښت ورځې پهٔ خلوت کښې ناسته- چېله وېستونکے پهٔ دغه موده کښې چا سره خبرې نهٔ کوی، ډوډی لږه خوری او دَ الله تعالیٰ ذکر او عبادت کوی او خنې پکښې روژه هم نیسی- (۲)دَ کوېږدنې ګټه- دَ نامزدۍ ګټه- دَ سرو زرو یا دَ سپینو نه جوړه هغه کړه حلقه چې نر او ښځه یُ دَ کوېږدنې دَ رسمونو نه وروستو پهٔ ګته کوی- (۳)څله- څېله- دَ ژمی پهٔ موسم کښې څو میاشتې دی چې دَ ډېرې یخنۍ لهٔ کبله پکښې دَ شپې چنې زرېږی- سپینه چله- توره چله- (۴)چلیه-

چله ګټه:(چِ-له-ګَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وړوکې ګټې سره بله ګټه- هغه ګټه چې دَ سرو زرو یا سپینو زرو، څلے یا دَ غمی ګټه پرې اچولے کېږی- مسواکه ګټه-

چلی:(چَ-لی)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چلباز-

چلی:(چَ-لی)اسم- (۱)پهٔ اوښ باندې ترلے شوے بار- (۲)دَ فصل انبار- دَ فصل دلی-

چلیپا:(چَ-لی-پا)اسم- مؤنث- (۱)دَ ضرب علامه- (۲)صلیب- (۳)زلفو ته کنایه چې دَ صلیب پهٔ شکل راخوروندی وی- (۴)دَ صحیح ضد- (۵)چوک-

چلی غتک:(چَ-لی-غَ-تَک)اسم مرکب- صفت- واحد- مذکر- چمباز- چلباز-

چل یک:(چَل-یَک)اسم- پهٔ څاروو اومالونو مالیه- ټېکس-

چلیګر:(چَ-لی-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چلباز-

چلیلو:(چَ-لی-لو)اسم- مذکر- وګورئ چللو-

چلیمخ:(چِ-لی-مخ)اسم- وګورئ چلے-

چلې چپې:(چَ-لې-چَ-پې)اسم مرکب- سمندری طوفان-

چلېدل:(چَ-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)جاری کېدل- رواجېدل- (۲)مشین روانېدل- (۳)پرلهٔ پسې ډزې کېدل- (۴)بدفعلی کېدل- بدکاری کېدل- (۵)استعمالېدل- (۶)ګرځېدل- چالانېدل- (۷)تلل- پهٔ حرکت کښې راتلل- (۸)ګذاره کېدل-

چلېدلے:(چَ-لې-دَ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چلېدلی- مؤنث چلېدلې- وګورئ چلېدل-

چلېدن:(چَ-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چلېدل-

چلېدنګ:(چَ-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چلېدل-

چلېدنه:(چَ-لې-دَ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چلېدل-

چلېدونکے:(چَ-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چلېدونکی- مؤنث چلېدونکې- وګورئ چلېدل-

چلېدهٔ:(چَ-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چلېدل-

چلېکار:(چَ-لې-کار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چرېکار-

چلی:(چَ-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وښکالے- وشکالے- ګونګورے- وړے- دَ جوارو وړے- (۲)دَ نارینه یو قسم ګته (ګتمی)-

چلی:(چَ-لی)اسم- مؤنث- دَ پېنې مخکښې څوکه چې زیات تر پهٔ رنګینه تار ګنډلے شوې وی-

چلے:(چَ-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بنګړے- (۲)وړے- (۳)هغه لرګے چې کاځې پرې صفا کولے شی- (۴)هغه لرګے چې پټی نه پرې کاځې راوښتے شی-

چلے:(چَ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- مانده- ضعیف- ټپ- کمزورے- چلیمخ-

چم:(چَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)کندے- محله- کاونړ- محلت- کوځه- پلو- هغه لار چې دَ څو کورونو دَ دېوالونو تر مینځه وی- (۲)دوکه- فرېب- ټګی- چل- چلبازی- (۳)پونه- شبنم- نرے باران- مېده باران- (۴)تګ- دَ تګ ډول- (۵)غندې- پهٔ شان- پهٔ ډول- (۶)طریقه- لار- (۷)خلهٔ کړونه- دَ سپکولو دَ پاره دَ چا تقلید- (۸)کردار- سلوک - اعمال-

چم:(چَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خټې هغه مقدار چې پهٔ یو ځل یوم یا بېلچه کښې اخستے شی- غټه لوټه- سټکورے- خټ- پینډه- کرچ- (۲)دَ غوښې یوه ټوټه- دَ غوښې یوه بوټی- (۳)وابهٔ او وېښتهٔ چې پهٔ خپل مېنځ کښې نښتی او تاڼ راتاڼ شوی وی- (۴)غټ کیم چې واښهٔ پرې زرغون شوی وی- (۵)برخه- خپل- څانګه-

چم:(چَم)اسم- (۱)چل- ټګی- (۲)واره- (۳)فن- (۴)چومر- تزویر- فرېب- دوکه-

چماچار:(چَ-ما-چار)اسم- واحد- مذکر- چرچورے- چنچڼے- چنچاڼے- چنچاړے- جراسک- چرچړک- کرړے- کیرړے-

چمان:(چَ-مان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چمن-

چمانده:(چَ-مان-ده)اسم- واحد- مؤنث- سپېرکونډکه- سپېرلکه- خړه مرغۍ- سوپوټکه- چنتی مرغۍ-

چمباز:(چَم-باز)اسم صفت- واحد- مذکر- ټګ- چلی- چلولی- ټګی ژن- چلباز- فرېبی- چلناک- فرېبګر- مکار- چمباس- خوشے- اواره- سرپله- لوچه- لوچک- بدچلنده- مکرژن- ټګمار-

چمبازی:(چَم-با-زی)اسم- مؤنث- چلبازی- دوکه- ټګی- فرېب- چلول- چمباسی-

چمباس:(چَم-باس)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چمباز-

چمباسی:(چَم-با-سی)اسم- مؤنث- وګورئ چمبازی-

چمبر:(چَم-بَر)اسم- واحد- مذکر- (۱) چنبر- چمبر- کوټ- ماڼی- قلا- فلېټس- دَ قلعه چاردېوالی- (۲)چک- (۳)څرخ- چورلے- دائره- غنډابه-

جولانګاه- (۴)دَ چاپې حلقه- چمبه- چمبې-

چمبرخیال:(چم-بر-خیال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چمبړخیال-

چمبړ :(چم-بړ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ګلداره خامته- رنګینه خامته- رنګداره خمته- ګلداره بیتی- (۲)نبتے- پپوست شوے-

چمبړ :(چم-بړ)اسم- (۱)صنم- (۲)چنبر- دَ چاپې غاړه-

چمبړخیال:(چم-بړ-خیال)اسم- واحد- مذکر- اوږد او تاؤ راتاؤ دَ باد رنګ دَ بوټي پهٔ شِبر یو ساګ چې اوم او پوخ دواړو حالتو کښې خوړلے شي- چمبرخیال- تره- تری- (افغانستان)-

چمبړے:(چم-به-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ لامبو مشک- شناز- خیک- سنداری-

چمبل:(چم-بل)اسم- مذکر- مغه زیرې خېلې چې پهٔ ونه دَ مرض پهٔ شکل کیږی او پهٔ نتیجه کښې ئې ونه زچه شي- بنوشه- بنفشه- زیړے- کوله ولے- پیچک- خپلانګه- نباتاتی نوم وائېلا ایس پی پی (VIOLA S PP)-

چمبو :(چم-بو)اسم- واحد- مذکر- لګ- لوټه- لوټکي-

چمبول:(چم-بول)اسم- واحد- مذکر- (۱) کوږ لوښے- چیت لوښے- (۲)دَ ماشومانو یو قسم لوبه چې دَ لمبلو نه وروستو ئې پهٔ شکو کښې کوی-

چمبه:(چم-به)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چامبل- چمبېل- دَ رامبېل چامبېل دَ کورنۍ یو ګل- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ چامبېل-

چمبه:(چم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پنجه- څپېړه- (۲)دَ ټوپۍ یا خولۍ غاړه- (۳)دَ چاپې غاړه- (۴)لوئ داریال- ستر دریال- غټ تمبل- تمبل- دف- دریه-

چمبه کښه:(چم-به-کښه)اسم- واحد- مؤنث- دَ تنور یو قسم وړه بوږۍ چې پهٔ لاس پخیږی- پنجه کښه- دستکی-

چمبېره:(چم-بې-ره)اسم- وګورئ چمبېره-

چمبېرک:(چم-بې-رک)اسم- واحد- مذکر- شوپرک- شمپرک- شاپرک- دَ نماښام چکالے- ښاپېرک- دَ نماښام څکلکے- چرمی شمبرک- ماښامک- ښاپیرکے- ماښام ښاپېرک- چمکاړ-

چمبېره:(چم-بې-ره)اسم- مؤنث- دَ ناسنته ملک دَ آله تناسل مغه زیاتی څرمن چې دَ سنتېدو پهٔ رخت ترې پرېکول کیږی- چمبېره- چوسی- چشې-

چمبېرے:(چم-بې-ړے)اسم صفت- تراوهٔ او ترخکون څیزونه- چامبېرے- اچار-

چمبېل:(چم-بېل)اسم- (۱)وګورئ چمبېلی- (۲)خوشبوداري داني چې دَ اریږې مومره وی-

چمبېلی:(چم-بې-لی)اسم- مؤنث- یو مشهور خوشبودار ګل چې زیر او سپین رنګ کښې وی- چمبېل- چامبېل- رامبېل چامبېل- ګل یاسمین- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ چامبېل-

چمبے:(چم-بے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ګروی مېوکے- دَ غاړې ګروه- دَ ګرونې مېوکے- (۲)کلا- قلعه- چنبر-

چمبے:(چم-بے)اسم- دَ چاپې غاړه- چمبه- چمبر- چنبرګردے-

چمپا:(چم-پا)اسم- واحد- مؤنث- زیربخن ګلونه لرونکی یوه ونه- نباتاتی نوم میچلیا چیمپکا (MICHELIA CHAMPACA)-

چمپاری:(چم-پا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ یوې مېوه دارې ونې نوم-

چمتاره:(چم-تا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم سریندہ- (۲)غنچکه-

چمتو :(چم-تو)اسم صفت- سمبال- جوړ- تیار- ساز- بهوملے- اغرقابو- آماده- تکړه- تاوور- (کول- کېدل مصدرونه)-

چمتوالے:(چم-تو-وا-لے)اسم- تیاری- تیارے- امادګی- اماده توب- خوښي-

چمته:(چم-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱) دبه- کلپی- قلپی- چمټه- (۲) دَ بارودو دَ ایښودو لوښے- تېلی- کڅوړه- میانی- سراق- بارودانی- بکس- (۳)دَ فقیرانو طبراق-

چمتے:(چم-تے)اسم- واحد- مذکر- دَ تېر او ستنې پهٔ مېنځ کښې دَ لرګی ټوټه- دَ ستنې برغولے- مغه پلن لرګے چې دَ ستن او شاتیر تر مېنځه ایښودے شي- سرې- مټې- اټکی-

چمټه:(چم-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دسپنه- دسکلے- (۲)سیخ- اورلړونے-

چمجن:(چم-جن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چینجن- چنجن- چینجو وملے- چینجو خوړلے- (۲)وروست- پوده- سخا- خوسا- ټوس- خوسو-

چمجے:(چم-جے)اسم- واحد- مذکر- چینجے- چنجے-

چمچ:(چ- مچ)اسم- څمڅې- چمچه- څمڅه- چمچې- کاشوغه- سپې-

چمچار:(چم-چار)اسم- واحد- مذکر- کرړے- کیرړے-

چمچالو:(چم-چا-لو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مرغی چې پهٔ اُبو کښې ګرځی چینجی راوباسی او خوری- چمچه لغزے- چمچولو- چمچلغے-

چمچری:(چم-چ-ری)اسم- واحد- مؤنث- چرچره- چمچوری-

چمچق:(چم-چق)اسم- تارے- برغولے-

چمچک:(چم-چک)اسم- واحد- مذکر- تلی- دَ موسیقی یوه آله-

چمچکی:(چم-چ-کی)اسم- واحد- مؤنث- کربوړے- مارخوری- څمڅکی-

چمچلغے:(چم-چل-غے)اسم- واحد- مذکر- یو ړول مرغی چې اُبو کښې چینجی نیسی او خوری ئې-

چمچلے:(چم-چ-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چورخولک- ګووونے- څرخندوکی- څرخندوکے- لاټو- څرخنی- څرخندنے- (۲)بانه ګر- بانه کونکے سړے- بانې ګر- (۳)لبنتی- نڅا کونکے ملک- کېبدونکے ملک- بازینګر ملک-

چمچمار:(چم-چ-مار)اسم- واحد- مذکر- یو قسم پټېدار نرے مار چې ډېر زهریلا او خطرناک وی- پټې مار- کمچه مار- کوچه مار- کپچه مار- کولالے مار-

چمچورکه:(چم-چو-رکه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چمچوری-

چمچوری:(چم-چو-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- څمڅکی- دَ چیندخې بچی- چمچری- چمچورکی-

چمچوری:(چم-چو-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چمچې- چمچورکه- چمچه- څمڅه- وړوکې سیپی یا څمڅی- چمچ- (۲)وره شتی-

(۲)وګورئ چمچورے-

چمچورے:(چم-چو-رے)اسم- واحد- مذکر- چمچوړے- چمچورې- ړولی- بالټے- ړولچه- باټے- تملوټ او کردان- د لرګی یا دمات نه جوړ شوے لوښے چې لاسکے لری او څڅخوړے نهٔ لری او د اُبو یا نورو مائعو څیزونو پهٔ وېشلو یا ړکولو کښې پکار راځی-

چمچوړے:(چم-چو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چمچورے-

چمچه:(چه-مهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- څمڅی- څمڅه- کاشوغه- سیپی- چمچ-

چمړدی:(چ-مړ-دی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چمړدے-

چمړدے:(چ-مړ-دے)اسم- واحد- مذکر- د شولو د پایکو د مېنځ تیرکے- د شولو پایکو کښې د هغه لرګی سر چې شولې ټکوی- چمړدی-

چمړکه:(چم-ړ-که)اسم- مؤنث- (۱)وګورئ چمړه- (۲)دوړی-

چمړه:(چم-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چرم- څرمن- پوستکے- وژن- (۲)غټه پلنه ټوټه چې د بل څیز نه رېبلے شوی وی- ټوکر- ټوټه- کپړه- پارچه- چمع چمړې-

چمړیتو:(چم-ړی-تو)اسم- مذکر- یو خاص قسم د سوجی حلوا چې څشکه غُندې وی-

چمغټ:(چم-غټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چمغړک-

چمغړق:(چم-غ-ړق)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چمغړک-

چمغړک:(چم-غ-ړک)اسم- واحد- مذکر- (۱)مری- د مری مړوکے- د غرندی مړوکے- (۲)چنغړک- چینغړک- څټ- مرکنړ- غرندے- چمغټ- ورمېږ- چمغړق-

چمغړک نیول:(چم-غ-ړک-نی-ول)فعل- یو بل د مری نه نیول-

چم غیل:(چم-غیل)اسم- چل-

چمک:(چ-مک)فعل- ګړ ګړ تلل-

چمک:(چ-مک)اسم- خلا- پړک- برېښ- ځلېدنه- برېښنا- پرق-

چمکار:(چم-کار)اسم صفت- وګورئ چمکدار-

چمکدار:(چ-مک-دار)اسم صفت- پرقېدونکے- پړکېدونکے- ځلېدونکے- ځلاند- چمکار- چړکېدونکے-

چمکلی:(چم-ک-لی)اسم- مؤنث- د ښځو د غاړې یو قسم کالے- چمکلی- چمپاکلی-

چمکنې:(چم-ک-نی)اسم- مونث- هغه موچنې یا پڼې چې پهٔ مخ ئې د تیلې کار شوے وی- زری پڼې-

چمکے:(چ-م-کے)اسم- واحد- مذکر- چړګوټے- جمع چمکی-

چم ګاونډ:(چم-ګا-ونډ)اسم مرکب- مکانی- همسائېګی- ګاونډیتوب- کور محلت- کور کوڅه- کور ګاونډ- انډ ګاونډ- د کور چاپېرچل- کور کندے- د استوګې خواوشا- چم ګوانډ- چمګونډ-

چمګر:(چم-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- چلګر- چل ولی- ټګی ژن- فرېبی- چلی- ټګ- چمباز- چلباز- چلناک- (افغانستان)-

چم ګوانډ:(چم-ګ-وانډ)اسم مرکب- وګورئ چم ګاونډ-

چمګونډ:(چم-ګ-ونډ)اسم مرکب- وګورئ چم ګاونډ-

چمن:(چ-من)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه هوار مېدان چې کبل او واښهٔ پکښې راشنهٔ شوی وی- هغه ځائ چې ګلونه لری او خلق ورته د سېل د پاره ورځی- ګلستان- باغ- د ګلونو، شینکې او کبلو نه ډک مېدان- (۲)ډاګه- غولے- مېدان- صفا مېدان-

چمن:(چ-من)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)سمند- مضبوط- طاقتور- قوتناک- (۲)بې سره اس- (۲)شوخ- ګستاخ- سرکش- نافرمان- چمند-

چمند:(چ-مند)اسم صفت- واحد- مذکر- چمن- چمندے- (۱)شوخ- وران- لهٔ خویه شوخ وشنګ- نافرمان- ګستاخ- وران کار- وران کارے- (۲)ترنده اس- لټ اس- تریخ او ګستاخ اس-

چمنده:(چ-من-ده)اسم صفت- د ژوندانهٔ کامیابی- اقبال مندی- کامیابی- نېک بختی-

چمندی:(چ-من-دی)اسم- د چمند صفت- د چمند فعل و حرکت- سمندی- سرکشی- نافرمانی- شوخی- بې پروائی- چمنی-

چمندے:(چ-من-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چمند-

چمنډ:(چ-منډ)اسم صفت- چاق- مضبوط- تکړه- چاغ- شلنډ- مزے- پهٔ غوښو پټ-

چمنو:(چم-نو)اسم- وګورئ چمنی-

چمنی:(چم-نی)اسم- وګورئ تولی- چمنی-

چمنی:(چ-م-نی)اسم صفت- (۱)د چمن- چمن ته منسوب- د چمن متعلق- (۲)چمندی-

چمنی:(چم-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)مګ- دودخانه- لوګی خانه- رو- روشندان- د نغری یا انګیټی د لوګی د وتو لاره- (۲)د چتی پهٔ شان یوه وړه مرغی چمنی- چمنو-

چمنے:(چم-نے)اسم صفت- تکړه- بهادر- جمع چمنیان/چمنی-

چموخم:(چ-مو-خم)اسم- موزون تګ- موزون رفتار- پهٔ ناز تلنه- برابر تلنه- (۲)چم- چل- ټګی-

چموسه:(چ-مو-سه)اسم- مؤنث- یو قسم پېزار- کورې- ګاولې- مچنه- پنه- سوکلې- د خامې (اومې)څرمنې بوټ یا پنه- د اومې څرمنې پېزار- جمع چموسې-

چموکے:(چ-مو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- دوکه باز- تېراېستونکے- چلوان- چلباز- چمباز- ټګمار- دروهونکے- ټګ- ټګی ژن-

چمه:(چهٔ-مه)اسم صفت- واحد- مؤنث- بدخویه ښځه-

چمه:(چهٔ-مه)اسم- واحد- مؤنث- تیره- کټه- ډبره- کاڼے- غرمه- بوټه- کبړه-

چمیا:(چم-یا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چمیار-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

چمیار:(چم-یار)اسم- واحد- مذکر- هغه څوک چې څپلې جوړوي- چمیا-
موچي- څمیار- بوټ دوز- پینه دوز-
چمیارتوب:(چم-یار-توب)اسم- موچي توب- څمیاري- بوټ دوزي- چمیاري-
چمیاري:(چم-یا-ري)اسم- وګورئ چمیارتوب-
چمیکے:(چ-مي-کے)اسم- واحد- مذکر- چرګوړے- چچوړے- چرګوټے- د
چرګې وړوکے بچے- چومکے-
چمېدل:(چ-مې-دل)مصدر لازم- (۱)د مرغۍ د بچیو آواز کول- چغېدل- چن
چن کول- (۲)غڼوېدل-
چمېدن:(چ-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چمېدل-
چمېدنګ:(چ-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چمېدل-
چمېدنه:(چ-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چمېدل-
چمېدونکے:(چ-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چمېدونکي-
مؤنث چمېدونکې- وګورئ چمېدل-
چمېدهٔ:(چ-مې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه-
وګورئ چمېدل-
چمېنډل:(چ-مېن-ډل)مصدر- چاپې کول- کښېمنډل-
چنا:(چهٔ-نا)اسم صفت- څو چنده-
چناخته:(چ-ناخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- شناخته- پهٔ قبر ولاړه خازه-
(افغانستان)-
چنار:(چ-نار)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم ونه چې ډېره نېغه او دنګه خېژي
او لرګی ئې پهٔ ابادیو کښې لګولے شي- چینار- نباتاتي نوم پلاټانس
اورینټالس اېل (PLATANUS ORIENTALIS L)- (۲)لوړ چېږ- لوړدنګ-
(۳)وګورئ جګوله-
چناسي:(چ-نا-سي)اسم- د سترګو یو ناروغي چې د پردې پهٔ شکل
څرګندیږي-
چناغ:(چ-ناغ)اسم- واحد- مذکر- د چرګ د سینې نیم دائره هډوکے- ګروه-
غولکے- چیناغ-
چناؤ:(چ-ناؤ)اسم- واحد- مذکر- د اُبو سر-
چنباګل:(چم-با-ګل)اسم- یو قسم ګل چې رنګ ئې زیړ او سپین وي- نباتاتي
نوم د پاره وګورئ چامبېل-
چنبر:(چم-بر)اسم- وګورئ چمبر/چمبے-
چنبرخیال:(چم-بر-خیال)اسم- وګورئ چمبرخیال-
چنبرګردے:(چم-بر-ګر-دے)اسم- مذکر- وګورئ چمبے-
چنبه:(چم-به)اسم- مؤنث- اتهٔ انچه پلن لرګے چې د جغ پهٔ برنۍ حصه
یادیږي-
چنبه:(چم-به)اسم- د یو بوټي نوم چې سپین واړهٔ ؤاړهٔ ګلونه کوي- چمبه-
چمبېل- چامبېل-
چنبے:(چم-بے)اسم- مذکر- د چنبېل ګل-

چنبېل:(چم-بېل)اسم- مذکر- رامبېل- چامبېل- چمبېل- نباتاتي نوم
جسمینم ګرینډیفلورم (JASMINUM GRANDIFLORUM)-
چنبېلوګل:(چم-بې-لو-ګل)اسم- مذکر- وګورئ چونیاکوکې-
چنبېلي:(چم-بې-لي)اسم- مؤنث- وګورئ چمبېلي-
چنته:(چن-ته)اسم- مؤنث- خرخشه- غشګ- چنته- دک سودا- خرخشه-
چنتي:(چن-تي)اسم- واحد- مذکر- کوترې-
چنتي مرغي:(چن-تي-مر-غي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چمانده-
چنج:(چنج)اسم صفت- کرکه- نفرت-
چنجاک:(چن-جاک)اسم صفت- واحد- مذکر- چغزي- چغجي- چې ژر ماتیږي-
د متاک ضد-
چنجرې:(چن-ج-رې)اسم- واحد- مؤنث- زرکه- مشهوره مرغۍ چې سترګې ئې
د ښکلا پهٔ وجه ډېرې مشهورې دي-
چنجرے:(چن-جهٔ-رے)اسم- مذکر- تنزرے- تمخرے- تمزرے- سائنسي نوم
فرانکولینس (FRANCOLINUS) یا پانډې سېریانس (PONDICERIANUS)-
چنجن:(چن-جن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چینجن- چنجن شوے- چینجن
شوے- چینجو وهلے- چینجو خوړلے- (۲)مضر- جنجالي- نکته چین-
چنجنتوب:(چن-جن-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)چینجنتیا- چنجنتیا-
چنجنوالے- خوساتوب- چینجنوالے- سخاوالے- سخاتوب- (۲)پهٔ خبره
کښې خبره پېدا کونه- د مچ نه کوچ وېستل-
چنجنتیا:(چن-جن-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چنجنتوب-
چنجنوالے:(چن-جن-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چنجنتوب-
چنجنول:(چن-جهٔ-نه-ول)مصدر متعدي- (۱)چینجنول- پهٔ چینجو وهل- پهٔ
چنجو وهل- (۲)پهٔ خبره کښې خبره پېدا کول- خبره خرابول- یوه موضوع
یا یوه خبره خرابول-
چنجنون:(چن-جهٔ-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چنجنول-
چنجنونکے:(چن-جهٔ-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چنجنونکي-
مؤنث چنجنونکې- وګورئ چنجنول-
چنجنونګ:(چن-جهٔ-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چنجنول-
چنجنونه:(چن-جهٔ-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چنجنول-
چنجنه ډېره:(چن-جهٔ-نه-ډ-ېهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم سخت زیړ او
سوري سوري کاڼي دي چې د اوښکو پهٔ شان ماده ترې راڅڅیږي-
چنجني:(چن-جهٔ-ني)اسم- مؤنث- کړکېچني-
چنجنېدل:(چن-جهٔ-نې-دل)مصدر لازم- (۱)چنجن کېدل- چینجنېدل- چینجي
پکښې پېدا کېدل- (۲)د یوې خبرې وړېدل او خرابېدل-
چنجنېدن:(چن-جهٔ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چنجنېدل-
چنجنېدنګ:(چن-جهٔ-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چنجنېدل-
چنجنېدنه:(چن-جهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چنجنېدل-
چنجنېدونکے:(چن-جهٔ-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع

چنجنېدونکی- مؤنث چنجنېدونکې- وګورئ چنجنېدل-

چنجنېدهٔ:(چن-جهٔ-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چنجنېدل-

چنجنه:(چن-جهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- چنچنه-

چنجوغے:(چن-جو-غے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم مېوه چې رنګ يې سور وی او خوند يې خوږ وی- دا مېوه دَ پېچش دَ دوائی پهٔ توګه هم پکارولے کيږی-

چنجول:(چن-جه-وَل)مصدرِ متعدی- کرکه کول- نفرت پېدا کول- زړهٔ تورول-

چنجولے:(چن-جه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع چنجولی- مؤنث چنجولې- وګورئ چنجول-

چنجون:(چن-جه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چنجول-

چنجونکے:(چن-جه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چنجونکی- مؤنث چنجونکې- وګورئ چنجول-

چنجونګ:(چن-جه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چنجول-

چنجونه:(چن-جه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چنجول-

چنجوهٔ:(چن-جه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چنجول-

چنجوے:(چن-جوے)اسم- واحد- مذکر- هغه درې غابيزه آله چې ماشومان پرې پتيره پوړې مېده کوی-

چنجېدل:(چن-جې-دَل)مصدرِ لازم- وګورئ چنجنېدل-

چنجېدلے:(چن-جې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع چنجېدلی- مؤنث چنجېدلې- وګورئ چنجېدل-

چنجېدن:(چن-جې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چنجېدل-

چنجېدنګ:(چن-جې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چنجېدل-

چنجېدنه:(چن-جې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چنجېدل-

چنجېدونکے:(چن-جې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چنجېدونکی- مؤنث چنجېدونکې- وګورئ چنجېدل-

چنجېدهٔ:(چن-جې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چنجېدل-

چنجے:(چن-جے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چينجے-

چنچړ:(چن-چړ)اسم- واحد- مذکر- چرچڼ- چنچڼ- چنچڼک- چېچنک- جنجڼ- دَ چرچڼې نر- نر چنچڼ- وړوکے خړرنګے مرغے چې دَ چڼ چڼ آواز کوی- چنچڼ- مؤنث چنچړه-

چنچړے:(چن-چهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو دَ لوبو هغه ورکوټے څيز چې پکښې کنکر اچولی شوی وی او پهٔ شرنګولو آواز کوی- چرچڼے- جنجڼے-

چنچل:(چن-چل)اسم- واحد- مذکر- چانجلے-

چنچنه:(چن-چهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- مذکر چنچڼ- چرچنه- چنچړه- چېچنه- جنجنه- يوه وړه خړرنګې شان مرغۍ چې اکثر پهٔ کورونو کښې جالې جوړوی او بچی راوړی او هر وخت چڼېږی-

چنچڼی:(چن-چهٔ-ڼی)اسم- مؤنث- يو قسم مرغۍ چې چڼ چڼ کوی- چنچڼه-

چندار:(چن-دار)اسم- واحد- مذکر- جاروکش-

چنداول:(چن-دا-ول)اسم- مذکر- دَ فوځ هغه ټولے چې دَ لوئ فوځ نه وروستو راروان وی- چنډاول-

چندخ:(چن-دخ)اسم- واحد- مذکر- واحد- غټ چيندخ- اکابکا- باټا چيندخ- غټه چونګښه- چنګش- يو قسم غټه چيندخه چې پهٔ اُبو کښې دَ قړ قړ اواز کوی- چونغخ-

چندرچېړی:(چن-در-چې-ړې)اسم- مؤنث- دَ ماشومانو يو قسم لوبه-

چندرو:(چند-رو)اسم- مؤنث- پرخه- پونې- پونه- شبنم- شګنم-

چندرو:(چند-رو)اسم- مؤنث- چنګړے- چغی- چيندرو- چندری- جنت دوزخ- موڅې- دَ ماشومانو يو قسم لوبه-

چندروکے:(چند-رو-کے)اسم- واحد- مذکر- چټے- چترکے- چورندک- يو قسم وړه مرغۍ- چټکے-

چندری:(چند-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ارګوړی لوبه- پهٔ يوه پښه ګړ ګړ تلنه- (۲)موڅې- چندرو- چيتی- چيندرو- (۳)چغی- (۴)لينکتی-

چندرے:(چند-رے)اسم- دَ ښځې تناسلی آله- دَ زنانو عضوِ مخصوصه-

چندړ:(چن-دړ)اسم- واحد- مذکر- صندل- چندڼ- يو قسم وَنه ده چې خوشبويه لرګے لری- نباتاتی نوم- سينټيلم ايلبم (SANTALUM ALBUM)-

چندک:(چن-دک)اسم- ټوکر- ټوکر خوړنه- تيندک خوړنه-

چندل:(چن-دَل)اسم صفت- (۱)پهٔ ارګوړی تلونکے- پهٔ يوه پښه تلونکے- پهٔ چړندی تلونکے- (۲)پهٔ الګوړی تلل- (مصدر)- (۲)سکونړی- چونړی-

چندنی:(چن-دهٔ-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سپينه کپړه- سپينه ټوټه- سپينه روجائی- (۲)ترنګ- شرنګ- (دَ رباب)- دَ ږول ږب-

چندڼ:(چن-دڼ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چندړ-

چندڼ مار:(چن-دڼ-مار)اسم مرکب- واحد- مذکر- چندڼار- چندنار- امېل غنډې يو قسم دَ غاړې کالے چې يو لاس ترې وېستلے کيږی-

چندوړے:(چن-دو-ړے)اسم- واحد- مذکر- کودے- ټوکر- کودنے- کودړے- کودوړے-

چندوله:(چن-دو-له)صفت- واحد- مذکر- بکره- جينوټې- جينی- پېغلوکې- باکره جينی- جلکی- جنکی- پېغله- نوې نوې ځوانی ته رسېدلې جينی-

چندولی:(چن-دو-لی)اسم- مؤنث- چړی- چيتی- موسی- چيندرو- جانتو- دَ ماشومانو جينکو يوه لوبه-

چندونے:(چن-دو-نے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- غوړور- وړدهٔ غوړونه لرونکے- جمع چندونی-

چندونے:(چن-دو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوږ پوڅکی- دَ غوږ پڅکی- دَ غوږ نرمه- دَ غوږ لاندينی نرمه حصه- دَ غوږ پستکی- دَ غوږ پسته غوښه-

چنده:(چن-ده)اسم- واحد- مؤنث- بسپنه- چانده- دَ خېر ښېګړې دَ کار دَ

پاره دَ ګڼو خلقو نه راټولې شوې روپۍ پېسې- (۲)دَ څهٔ اخبار یا رسالې دَ اخستو دَ پاره دَ هغې دَ میاشتې یا دَ کال رقم یو ځایْ جمع کول- جمع چندې-

چندے:(چَن-دے)اسم- واحد- مذکر- جمع چندی- مؤنث چندی- شاعر-

چنډال:(چَن-ډال)اسم- مذکر- دَ سپی دَ اُبو څښلو کنډول یا مات کودے-

چنډال:(چَن-ډاَل)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کنډال- کنګال- بې پېسو- هغه څوک چې دَ یوې پېسې محتاجه وی- خوار- غریب- (۲)پست- پس همته- بې کاره- بې روزګاره(۳)بې اولاده- چې اولاد يُ نهٔ وی- (۴)دَ ټولو حقونو نه محروم- محرومه-

چنډال:(چَن-ډالَ)اسم صفت- واحد- مذکر- جاروکښ- مُصلی- چُوړے- چُواړے- صفائی کونکے-

چنډال توب:(چَن-ډالَ-توبَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوړی توب- (۲)غریبی- خواری- (۳)پستی- بې همتی- (۴)بېکاری- (۵)محرومیت- (۶)اولاد نهٔ لرنه-

چنډاول:(چَن-ډا-وَل)اسم- واحد- مذکر- چنداول- دَ لښکر هغه ټولے چې دَ ټولو نه وروستو وی او قراول يُ دَ ټولو نه مخکښې وی-

چنډت:(چَن-ډَت)اسم صفت- واحد- مدکر- خوار- غریب- مفلس- نادار- خوارپېرک- نېسمن- نېستمن- خوار زار- محتاج- موتازه-

چنډخه:(چَن-ډه-خه)اسم- واحد- مؤنث- چونګښه- چنګښه- چینګښه- څنخښه- څینګښه- چیندخه- جمع چنډخې-

چنډک(چَن-ډَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)شنډک- غوک- دَ ماشومانو یو قسم لوبه ده چې پهٔ زمکه کښې قُتے وُباسی او دَ څهٔ فاصلې نه ورته ډبره، مردکے یا پېسه وراچوی- ګړګړه- (۲)ټکره-

چنډل:(چَن-ډَل)مصدرِ لازم- څنډل-

چنډن:(چَن-ډَن)اسم- مذکر- وُګورئ چنډړ- نباتاتی نوم سېنټېلم اېلبم -(SANTALUM ALBUM)

چنډو:(چَن-ډُو)اسم- واحد- مذکر- دَ نشې یو قسم چې دَ افیمو نه جوړولے شی، اُبو سره پخولے او دَ چیلم پهٔ شان څښلے شی- جنډو-

چنډوباز:(چَن-ډو-بازَ)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ جنډو نشائی- دَ چنډو نشه کونکے- هغه څوک چې دَ جنډو نشه کوی- هغه څوک چې دَ جنډو پهٔ نشه اموخته شوے وی- جنډو څښونکے- جنډوباز- دَ جَنډو عملی-

چنډوکه:(چَن-ډو-که)اسم- مؤنث- یو قسم بوټے- جمع چنډوکې-

چنډول:(چَن-ډولَ) اسم- مذکر- یو قسم مرغی- دَ سوړی مرغی یو ذات مرغی چې اواز يُ ډېر خوږ وی-

چنډه:(چَن-ډه)اسم- مؤنث- (۱)ټوکر- ټوټه- حصه- ټوکړه- کپړه- (۲)ترازه- قاش- دړه- تینډړه- تروزه-

چنډی:(چَن-ډی)اسم- مؤنث- (۱)مشبکه ګلونه- څکنډی- (۲)دَ نسوارو یا بل میده شی هغه مقدار چې پهٔ دوو ګتو کښې راشی- وار-

چنغاله:(چَن-غا-له)اسم- مؤنث- چنغله- کوېدن شوې - کوزده شوې- کوېژدن شوې جینی- پهٔ نامه شوې- هغه جینی چې دَ چا پهٔ نامه شوی وی خو لا وادهٔ شوې نهٔ وی-

چنغړک:(چَن-غَ-ړَک)اسم- مذکر- چمغړک- مری ته نژدې ځایْ- مری- غاړه-

چنغل بازی:(چِن-غل-با-زی)اسم- مؤنث- (۱)مینه- عشق- (۲)پښه ارتون- پښې ارته- چنغول بازی-

چنغلتوب:(چَن-غَل-توبَ)اسم- مؤنث- چنغول جوړېدنه-

چنغله:(چَن-غَ-له)اسم- واحد- مؤنث- کوژدن کړې جینی- دَ چا پهٔ نوم شوې- ورکړې جینی- دَ چنغول مؤنث- نامزاده- کوېدن کړې جینی-

چنغوزے:(چَن-غو-زے)اسم- مذکر- جنغوزے- وُګورئ چلغوزے- جمع چنغوزی-

چنغول:(چَن-غول)اسم- مذکر- دَ چنغلې مذکر-

چنغول بازی:(چَن-غل-با-زی)اسم- وُګورئ چنغلبازی-

چنکک:(چَن-کَک)اسم- واحد- مذکر- وُګورئ چنګک-

چنکے:(چَن-کے)اسم- واحد- مذکر- غلبېل- چاڼ- پرویزے- جمع چنکی-

چنګ:(چَنګ)اسم صفت- مذکر- کېږ- پهٔ پنجه کښې - پهٔ لاس کښې-

چنګ:(چَنګ)اسم صوت- مذکر- (۱)دَ ټیز آواز- غټې کولمې نه دَ بادو دَ خارجېدو آواز- ټیز- چونګ- چونګے- آواز- سوڼ- سوڼ توڼ- سپڼ- غرت- ډنګ- دَ ټغ آواز- دَ ټر آواز-

چنګ:(چَنګ)اسم- مؤنث- پنجه- موټے- لپه- (فارسی)-

چنګ:(چَنګ)اسم- مذکر- چاپوز- انګړ- قلاب- چنګک- دَ اُسپنې کُنډه چې کبان پرې نیولے شی-

چنګ:(چَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم باجه- (۲)دَ موسیقی هغه آله چې ۲۴ تارونه (وزونه) لری- (۳)دَ ۴۰ میترو نه جوړ دَ یو تال نوم- (افغانستان)-

چنګاښ:(چَنګ-ګاښَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چونګاښ- کونی کبر- کنی کبر- خارچنګ- سرطان- ګنجپور- (۲)دَ هجری شمسی کال څلورمه میاشت- دَ سرطان میاشت-

چنګال:(چَنګ-ګالَ)اسم- واحد- مذکر- منګول- منګوله- پنجه- چنګل-

چنګ پهٔ چنګ:(چَنګ-پهٔ-چنګ)صفت (مرکب)- چنګ ونګ- ګډوډ- پرېشان- ابتر- تېتر بېتر- تس نس- خوارهٔ وارهٔ- تبت و پرک- تالا ترغه- خفه دلګیر-

چنګ چنګ:(چَنګ-چنګ)اسم صوت- چونګ چونګ- ستمے- زګېروے- زګروے- زبېرګے-

چنګ رباب:(چَنګ-رَ-باب)اسم مرکب- عېش و عشرت-

چنګرے:(چَنګ-ګه-رے)اسم- مذکر- سمندر- چیندرو- دَ ارګوړی لوبه- چیندرے- دَ ماشومانو یو قسم لوبه- چنګور- چندرو- چیتی-

چنګړ:(چَنګ-ګړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپک- بدخویه- بدمعامله- (۲)موصلے- شاخېل- چوړے- (۳)تورپوستے- (۴)خانه بدوش- چنګړے-

ئ" (څی-رَل)، "ې"(هې-ره-وَل)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وُګورئ تشریحات صفحه ۱

چنګړبوټے:(چَنګ-ګړ-بو-ټے)اسم- مذکر- وګورئ چګن-

چنګړے:(چَنګ-ګڼ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ چنګرے- (۲)وګورئ چنګر-

چنګښ:(چُنګ-ګښ)اسم- مذکر- (۱)غټ چینډخ- اکابکا- باټا چینډخ- چونګاښ- چینګښ- غټ چنډخ- قورټے- چنګاښ-

چنګښ:(چِنګ-ګښ)اسم- واحد- مذکر- چټے- چټرو- چټکے- چندولے-

چنګښه:(چنګ-ګه-ښه)اسم- واحد- مؤنث- چینډخه- جمع چنګښې-

چنګک:(چنګ-ګک)اسم- واحد- مذکر- جمع چنګکونه- د مچو په یو ځایٔ راغنډېدنه- انګک چنګک- الوول- الووېل- د یو بل د پاسه ناست- (۲)مغه تبرۀ په لاسو جوړ شوے مُهے چې ماهي ګیر یٔ د مهیانو د غولولو د پاره د ښکار په وخت په کنده کښې اچوي- وګورئ چنګ ۴-

چنګل:(چُنګ-ګل)اسم- مذکر- ځنګل- منګل- نوک- د درنده پنجه- د ښکاری مارغۀ پنجه- د بنیادم پنجه-

چنګل:(چُنګ-ګُل)اسم- واحد- مذکر- (۱)د زمکې مغه ټوټه چې د پینځلسو جریبو سره معادله وي- (۲)منګل- پنجه- نوک-

چنګل بازی:(چنګ-ګل-با-زی)اسم- مؤنث- چڼلبازي- چېنولبازي- چېڼلبازي- چڼلبوزي- ,

چنګن:(چَنګ-ګن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ژړندوکے- ژړېدونکے- زړونډوکے- د نری زړۀ خاوند- بې زړۀ- ډرپوک- مغه څوک چې ژر په ژړا کیږي- (۲)ټړن- ټڼن- (۳) بخیل- کنجوس- شوم-

چنګڼ:(چنګ-ګڼ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خانه بدوش- چنګړے- (۲)کمینه- کم ذات- چواړے- شاخے تاشے- څشکے- کم اصل- رذیل- جمع چنګیان-

چنګو:(چَنګ-ګو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم صحرانے مارغۀ-

چنګوټے:(چنګ-ګو-ټے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چنګوړے- (۲)د ځناور بچے- (۳)وړوکے ماشوم- کمکے ماشوم- وړکوټے ماشوم- وړکے ماشوم- کوچنے- کوچنوټے- ککوټے- کاکے- ککے- جمع چنګوټي-

چنګورے:(چنګ-ګُو-رے)اسم- مذکر- چنګوړے- د بم ټوټه یا پارچه- ترټنے- د تیرې ټوټه- د ډبرې ټوټه- جمع چنګوری-

چنګوړ:(چَنګ-ګوړ)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو یو قسم لوبه- چندری- چیتی- موټی- چیندری- چندری- چیندرو-

چنګوړے:(چنګ-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترټنے- د ډبرې ټوټه- د کاڼي یا تیرې ټوټه- د بم ټوټه یا پارچه- (۲)د شولو ګیډی- د شولو څټی- د شولو څېټی- (۳)وګورئ چنګوټے- جمع چنګوړي-

چنګول:(چنګ-ګه-وَل)مصدر متعدي- وګورئ چینګول-

چنګولی:(چنګ-ګو-لی)اسم- مؤنث- د غنمو ګیډی- د غنمو څترے- د غنمو سترے-

چنګونکے:(چنګ-ګه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چنګونکي- مؤنث چنګونکې- وګورئ چنګول-

چنګ ونګ:(چَنګ-وَنګ)صفت- (۱)تتر بتر- تس نس- نوستي- خوارۀ وارۀ- تالا ترغه-

چنګونه:(چنګ-ګ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چنګول-

چنګ ونے:(چَنګ-و-نے)اسم مرکب- (۱)چنګ د یو ساز نوم دے چې په خلۀ باندې د شپېلۍ په شان وملے کیږي- اونے شپېلۍ ته وائي- (۲)د پنجې او مښوکې په معنو کښې هم استعمالیږي-

چنګیتاز:(چنګ-ګي-تاز)اسم- مذکر- (۱)کوشش- کوښښ- لپ ځپ- (۲)د مُلخ غنډي یوه حشره چې د ونو ښاخونو پورې نښتې وي او جز جز کوي-

چنګېدل:(چنګ-ګې-دَل)مصدر لازم- ترنګېدل- ټنګېدل- د مات لوښي نه آواز وتل- چینګېدل- چینګ چینګ کول- (۲)وګورئ چینګېدل-

چنګی:(چنګ-ګي)اسم- واحد- مؤنث- چندری- د ماشومانو جینکو یوه لوبه- چیندرو

چنګی:(چنګ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم سپېره وړه چړچڼه- یو قسم وړه مرغۍ-

چنګے:(چَنګ-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- چڼر- بېنګے- بېنګا- کوږ سترګے- چنګر سترګے- چنګر سترګے- چڼر سترګے-

چنګے:(چُنګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- ټېکس- محصول- قلنګ- چونګ- چونګے- لپه- مغه رقم یا د یو جنس برخه چې اخستونکے یٔ ورکړي- مغه بې پېسو د خوراک څیز چې دوکاندار یٔ ماشوم ته د سودا اخستو نه پس ورکوي- جمع چُنګي-

چنګے:(چنګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- تیز- تیز- (۱)کوز- (۲)د تیز اواز-

چنوبه:(چ-نو-به)اسم- مؤنث- مغه ځایٔ چرته چې ډېرې چینې وي- چشمه سار- جمع چنوبې-

چنوسکے:(چ-نوس- کے)اسم صفت- واحد- مذکر- بخیل- کنجوس- شوم-

چنوغزه:(چ-نوغ-زه)اسم- واحد- مؤنث- مچوغڼه- مچلوغزه- مچنوغزه- مچوغنه- ښنوغزه- مچوغنده- جمع چنوغزې-

چنوسکے:(چ-نُوس-کے)اسم- د چنو د اوړو- غوړو او مالګې مرچکي نه جوړ یو ترسکون خوراک-

چنه:(چ-نه)اسم- واحد- مؤنث- د کور یا د کوټې د دېوال بهرنے اړخ- د دېوال یو اړخ- مورګه- رپ- (۲)امداد- مرسته- (۳)د کاڼو په توګه چا سره ښۀ ژوند تېرونه- (۴)چینه- چشمه- (۵)ښه- جمع چنې-

چنه:(چ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د څۀ څیز د اخستو په وخت د اخستونکی مغه خبرې چې خرڅونکی ته یٔ د نرخ د کمولو د پاره کوي- (۲)ورکړه راکړه- قرض پور- جمع چنې-

چنه:(چۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- ژامه- جامه- زامه- زومه- د خُلې لاندینۍ ژامه- ژامنه- جمع چنې-

چنیارے:(چن-یا-رے)اسم صوت- چینیارے- نرے او په یو مخ آواز-

"زبر"(خ-بۀ-ره)، "زورکے"(ښل)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "ۀ"(ز-ره)، "ۀ"(ډو-بې-دۀ)

چنی:(چَ-نی)اسم- مؤنث- شبنم- سپینه پرخه- هغه پرخه چې د ژمی یا منی پهٔ یخنۍ کښې پهٔ زمکه او پهٔ وُنو پریوځی-

چنے:(چِـهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه اَس چې درې رنګه لری- سور سپین بخن اس- سور سپین غټن اس-

چنے:(چَ-نے)اسم- واحد- مذکر- تبوتې- کاسه- کونډی-

چڼ:(چَڼ)اسم- مذکر- (۱) ګوډ- للون- کوډ- خېشاوه- (۲)هغه واړهٔ لرګی خس او کَیان وغېره چې دَ تیرونو دَ پاسه اچولے کیږی- (۳)پُومبه پهٔ نداف وهنه- (۴)انتحاب- چوڼ- چاڼ شوے- (۵) پاک- صفا- صفا سوتره- صاف- (۶)فیلټرونه- (۷)بې خچه کونه- بې غشه کونه- (۸)الټون- خېړنه- (۹)دَ جوارو دَ فصل کمزورے بوټے-

چڼ:(چَڼ)اسم- واحد- مذکر- سپوڼ- غرغوړ- معمولي شور- لږ فریاد- چوڼ-

چڼا:(چَ-ڼا)اسم صوت- چڼار- چڼارے- چاڼ چوڼ- دَ مرغیو کڼ اوازونه-

چڼاخه:(چَ-ڼا-خه)اسم- واحد- مؤنث/مذکر دَ هډوکو درد- دَ اندامونو درد- دَ جوړونو درد- دَ بندونو درد- روماټېزم-

چڼار:(چَ-ڼار)اسم صوت- وګورئ چڼا-

چڼاسک:(چَ-ڼا-سک)اسم صفت- واحد- مذکر- چڼیاسن- چړبشن- باسی شوے- زنګی- چڼاسن- هغه څهٔ چې پوپنګ او چڼاسی یې کړی وی-

چڼاسکه:(چَ-ڼاس-که)اسم- مؤنث/مذکر- یو قسم بوټے چې ګل یې دَ بنفشې دَ ګل دَ رنګ پهٔ شان وی- یو قسم واښهٔ چې نری وړدې وړدې پاڼې لری او شین ګل کوی- دا ګل دَ سپرلی خاصه نښه ده-

چڼاسکه:(چَ-ڼاس-که)اسم- مؤنث- چڼاسه- چڼاش- چڼوسی- چڼاشی- چڼیاشی- پوپنګ- سپین مواد چې پهٔ پسمانده یا پاتې شونو خوړو باندې دَ څهٔ وخت تېرېدو نه پس پېدا کیږی- دَ سخا کېدو عمل- جمع چڼاسکې-

چڼاسکے:(چَ-ڼاس-کے)اسم- مذکر- وګورئ چڼاسکه ۱-

چڼاسه:(چَ-ڼا-سه)اسم- مؤنث- وګورئ چڼاسکه- جمع چڼاسې-

چڼاسی:(چَ-ڼا-سی)اسم- مذکر- چڼاشی- چڼاسکه-

چڼاش:(چَ-ڼاش)اسم- مذکر- وګورئ چڼاسکه-

چڼاشه:(چَ-ڼا-شه)اسم- مؤنث- وګورئ چڼاسکه-

چڼاشی:(چَ-ڼا-شی)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)بوکړے- کوکړے- ککڑے- کروپے- (۲)چڼاسکه-

چڼ چڼ:(چِڼ-چِڼ)اسم صوت- دَ چنچڼې- دَ چرچڼې آواز- دَ مرغۍ آواز-

چڼ چڼ:(چِڼ-چِڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چرچڼ- چنچړک- یو قسم مرغۍ- کورنی مرغۍ- دَ چرچڼې مذکر- (۲)پزدنګې-

چڼ چڼاکه:(چِڼ-چَ-ڼا-که)اسم- مؤنث- مرغۍ-

چنچڼک:(چِن-چَ-ڼک)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترغوړ- یوه مرغۍ چې توره غاړه لری- (۲)دَ چنچڼې مذکر- (۲)سپک دسته سړے- تپ تیپ او مانده سړے-

چنچڼه:(چِن-چِهٔ-ڼه)اسم- مؤنث- چرچڼه- چنچڼه- چونچڼه- چوغکه- یوه مرغۍ چې زیاتره پهٔ کورونو کښې جالې جوړوی-

چڼ چڼه:(چِڼ-چِهٔ-ڼه)اسم- مؤنث- دَخالی ورځ- اول- دَ هفتې ورځ-

چڼ چڼے:(چِڼ-چه-ڼے)اسم- واحد- مذکر- شڼشڼے- دَ ماشومانو دَ لوبو یو څیز- جمع چڼ چڼی-

چڼغوزی:(چِڼ-غو-زی)اسم- جمع- مذکر- چلغوزی- چنغوزی- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ چلغوزے-

چڼک:(چَ-ڼک)اسم- مذکر- خل- بریښنا-

چڼکاؤ:(چِڼ-کاؤ)اسم- مذکر- چړکاؤ- پهٔ زمکه دَ اُبو نری پونه نُستنه- دَ اُبو بوژ- اُبهٔ پرومنه- چړقاؤ- اوپاشی- زمکه اوپاشی کونه- دَ اُبو ترمکه- دَ اُبو ترمکیا کونه-

چڼکاوول:(چِڼ-کا-وه-وَل)مصدرِ متعدی- اوپاشی کول- دَ اُبو پړومل- چڼکاؤ کول- چړقاؤ کول- اُبهٔ ترمکیا کول- اُبهٔ ترمکه کول-

چڼکاوون:(چِڼ-کا-وه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼکاوول-

چڼکاوونه:(چِڼ-کا-وه- وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼکاوول-

چڼکاوونکے:(چِڼ-کا-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چڼکاوونکی- مؤنث چڼکاوونکې- وګورئ چڼکاوول-

چڼکاووهٔ:(چِڼ-کا-وه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼکاوول-

چڼکاوېدل:(چِڼ-کا-وې-دل)مصدرِ لازم- چړکاوېدل- چړقاوېدل- اُبهٔ ترمیا کېدل- اُبهٔ ترمه کېدل- اُبهٔ پرخه کېدل- اُبهٔ شیندل- اوپاشی کېدل- اُبهٔ پړوهل کېدل- اُبهٔ پهٔ زمکه پونه کېدل-

چڼکاوېدن:(چِڼ-کا-وې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼکاوېدل-

چڼکاوېدنګ:(چِڼ-کا-وې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼکاوېدل

چڼکاوېدنه:(چِڼ-کا-وې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼکاوېدل-

چڼکاوېدونکے:(چِڼ-کا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چڼکاوېدونکی- مؤنث چڼکاوېدونکې- وګورئ چڼکاوېدل-

چڼکاوېدهٔ:(چِڼ-کا-وې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼکاوېدل-

چڼکېدونکے:(چِڼ-کې-دون-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- آب دار- پړقېدونکے- خلېدونکے- جمع چڼکېدونکی- مؤنث چڼکېدونکې-

چڼل:(چَ-ڼل)مصدرِمتعدی- (۱)چوڼل- چڼ کول- صافول- پاکول- غلبېلول- لهٔ غلبېل نه تېرول- (۲)تولول- سره کول- جمع کول-

چڼول:(چَ-ڼه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)ګوډول- ګوډ کول- خېشاوه کول- (۲)پاکول- صفا کول- چڼ کول- چوڼل- غلبېلول- چاڼول- (۲)مالوچ پنډت کول- (۴)چوڼ کول- چاڼ کول- انتخابول- انتخاب کول-

چڼون:(چَ-ڼه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼول-

چڼونکے:(چَ-ڼه-وون-کے)اسم- واحد- مذکر- غلبېل- چاڼ- چې وړهٔ یا بل مېده څیز ترې چڼېدے شی-

چڼونګ:(چَ-ڼه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼول-

چڼونه:(چَ-ڼه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چڼول-

چڼونے:(چَ-ڼو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پروېزے- چڼوونے- (۲)چاڼ کونے-

صفا کونے- پاکوونے- چڼ کونے- غلبېلونے- صفا کونکے-

چنړونکے:(چ-ڼ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چنړونکي- مؤنث چنړونکې- وګورئ چنړول-

چنړوونے:(چ-نړ-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- چنړونے- دَ چنړولو آله- چاڼ-

چنړوۀ:(چ-نړ-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چنړول-

چنړه:(چ-نړه)اسم- مؤنث- دَ دالو يو قسم چې دَ انسان دَ خوراک نه علاوه اسونو ته هم ورکولے شي-

چنړه:(چه-نړه)اسم- مؤنث- پنړه- موچنړه-

چنړهار:(چڼ-هار)اسم صوت- دَ مارغانو اوازونه-

چنړيا:(چڼ-يا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ څپلي مغه پټه چې څپلي پرې پښې سره مضبوطولے شي- دَ ګوړيکې نه تر بکسوې پورې دَ څپلي مغه حصه چې څپلي پرې پښې پورې کلکولے شي- (۲)پوګړے- ويلي شوې وازده-

چنړيا:(چڼ-يا)اسم- واحد- مؤنث- يو بوټے چې دَ پاڼو نه ئې شربت جوړولے شي- بنفشا- نباتاتي نوم وائېلا ايس پي پي- (VIOLA S P P)- (۲)دَ بنفشي رنګ- چونړيانی رنګ- چونړيا- يو قسم رنګ دے چې دَ شين او قرمزي رنګ دَ ترکيب څخه لاس ته راځي او دَ دونېمې درجې دَ اصلي رنګونو سره ګڼلے کېږي-

چنړياتوب:(چڼ-يا-توب)اسم- مذکر- دَ بنفشي رنګ- چونړيانی رنګ درلودنه-

چنړياسن:(چڼ-يا-سن)اسم صفت- واحد- مذکر- مغه څۀ چې چنړياسي ئې کړې وي- چنړوسے- چنړياسي لرونکے-

چنړياسه:(چڼ-يا-سه)اسم- مؤنث- (۱)يو قسم نرۍ او چينجره کپړه- (۲)وګورئ چنړاسکه-

چنړياشے:(چڼ-يا-شے)اسم صفت- واحد- مذکر- چنړېشے- چخے- چيخن- خچن- پۀ يو څيز چې موده واړي او شنۀ شنۀ نرۍ نرۍ جالکي شان پرې راپېدا شي- خوند او رنګ ئې بدل شي-

چنړياکۍ:(چ-نيا-کۍ)اسم- مؤنث- توتکے ګل- چټکے-

چنړېدل:(چ-نړې-دل)مصدر لازم- (۱) کوږ کېدل- ګوړېدل- (۲)پاکېدل- چونړېدل- صفا کېدل- غلبېلېدل- (۳)مالوچ پڼېت کېدل- (۴)انتخاب کېدل- انتخابېدل- (۵)چاڼېدل- چاڼ کېدل- چونړېدل- (۶)شيندل کېدل- پاشل کېدل- چوڼ کېدل- (۷)دَ چنچڼو اوازونه کول- دَ مرغيو چنړهار کول- چڼ چڼ کول-

چنړيسي:(چ-نړي-سي)اسم- جمع- مذکر- نرۍ نرۍ چينجي چې غوښه يا بل داسې څيز ئې دَ تودوالي لۀ کبله کوي-

چنړېدلے:(چ-نړې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چنړېدلي- مؤنث چنړېدلې- وګورئ چنړېدل-

چنړېدن:(چ-نړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چنړېدل-

چنړېدنګ:(چ-نړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چنړېدل-

چنړېدنه:(چ-نړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چنړېدل-

چنړېدونکے(چ-نړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چنړېدونکي- مؤنث چنړېدونکې - وګورئ چنړېدل-

چنړېشن:(چ-نړې-شن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)زنګ ژن- زنګي- چړېسن- چنړياسن- چنړياشے-

چنړېشے:(چ-نړې-شے)اسم صفت- وګورئ چنړياشے-

چنړۍ:(چ-نړۍ)اسم- مؤنث- چونړۍ- دَ اُسپنې پانه چې دَ لرګي ماتولو دَ پاره پکارولے کېږي-

چنړۍ:(چ-نړۍ)اسم- واحد- مؤنث- چنړيا- دَ څپلي مغه وړه پټه چې دَ پُندې نه چاپېرولے شي-

چنړے:(چۀ-نړے)اسم- واحد- مذکر- طالب- (۱)مغه ملک چې پۀ جومات کښې دَ ديني سبق زده کولو دَ پاره وسېږي او دَ جومات خدمت هم کوي- (۲)مغه ملک چې دَ طالبانو دَ پاره دَ کورونو نه روټۍ راغونډوي-

چنړے:(چ-نړے)اسم- مذکر- (۱)دَ څپلي وندنے- دَ پڼو غړوندے- دَ څپلي غړوندے- (۲)مغه اُسپنه چې نورې اُسپنې پرې پرېکوي يا سورې کوي-

چنړے:(چ-نړے)اسم- مذکر- (۱)درې ګوټيزه واړۀ سورې- (۲)دَ جال وړوکے ټوکړے-

چو:(چو)اسم- واحد- مذکر- (۱) چاؤد- چود- چاک- درز- (۲)دَ دوو غرونو تر مينځه تنګه لار- (۳)دَ نهر يا لښتي پۀ پوله کښې درز راتلنه- (۴)بندېز- ايسارتيا- کېرزالے-

چو:(چو)اسم صوت- (۱)دم چوف کونه- (۲) دَ اس يا غوائي دَ روانولو آواز- دَ اوښ دَ روانولو آواز- دَ اوښ دَ څملولو آواز-

چو:(چو)حرف جار- (۱)خو- لېکن- مګر- (۲)څو- څوره-

چوا:(چ-زا)اسم صفت- واحد- مذکر- وړوکے سر لرونکے- دَ وړوکي سر خاوند- بريټے-

چواټے:(چ-وا-ټے)اسم- واحد- مذکر- کُنج- ګُټ- دَ کمرې يا دَ ګلي يو ګُټ-

چوار:(چ-وار)اسم صفت- واحد- مذکر- للونه- زوړند- اوېزان- ځوړند- کوږے- ځړېدلے-

چوارول:(چ-وا-ره-ول)مصدر متعدي- ځړول- زوړندول- اوېزاندول- کوږې کول- ځوړندول-

چوارونکے:(چ-وا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوارونکي- مؤنث چوارونکې- وګورئ چوارول-

چوارونه:(چ-وا-ره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوارول-

چواره:(چ-زا-ره)اسم- مؤنث- خُرما- وچه کجوره- يو قسم مېوه- دَ کجورې پۀ شان مېوه- جمع چوارې- نباتاتي نوم فونېنکس ډېکټېلي فېرا (PHOENIX DACTYLIFERA)-

چوارۍ:(چو-زا-رۍ)اسم- واحد- مؤنث- مغه سورۍ شوې کجوره چې پۀ تار کښې اچولے کېږي او دَ ښځو دَ پاره دَ ماشوم پۀ غاړه کښې ځوړندول کېږي-

زبر "(غ-بۀ-ره)، زورکے "(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ۀ"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-هې-دۀ)

چوارېدل:(چْ-وا-رې-دَل)مصدرِ لازم- زوړندېدل- اوېزاندېدل- ځوړندېدل- ځړېدل- اوېزانېدل- کوږی کېدل- للېدل-

چوارېدن:(چْ-وا-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چوارېدل-

چوارېدنګ:(چْ-وا-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چوارېدل-

چوارېدنه:(چْ-وا-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چوارېدل-

چوارېدونکے:(چْ-وا-رې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوارېدونکي- مؤنث چوارېدونکې- وګوریٔ چوارېدل-

چوارېدهٔ:(چْ-وا-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګوریٔ چوارېدل-

چوارے:(چُ-وا-رے)اسم صفت- (۱)سخا- ګنده- ناولے- خوسا- (۲)دَ تحقير کلمه چې دَ يو بنده بدرنګي يا تورواله ستائيلے کيږی- تورمخے- (۳)خاکروب- مُسلی- چاروکش-

چوباره:(چو-با-ره)اسم- واحد- مؤنث- بالاخانه- دَ کور لوړه کوټه- دَ کوټې دَ پاسه بله کوټه-

چوب چينی:(چوب-چی-نی)اسم- چينی بوټے- يو قسم دوائی-

چوبدار:(چوب-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حاضرباش- اردلی- څوکيدار- (۲)ګله دار- دَ ګېډو دَ رمې څرونکے- (۳)ګرز لرونکے- ګرزدار- جمع چوبداران-

چوبداره:(چوب-دا-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- پېوپيوانه- کوتک ماره- تيارخوره- چوب ګرندی- هغه ښځه چې پهٔ شاهی محل کښې دننه خبر وړی راوړی-

چوبر:(چو-بر)اسم صفت- واحد- مذکر- سمسارے- غټ کټ- دنګ لوړ- اڅور- چاق- غټ پټ- هغه څوک چې پهٔ وجود ښهٔ غټ پټ او دنګ لوړ وی-

چوبره:(چوب-ره)اسم- واحد- مؤنث- غټه پټه او څربه جينۍ-

چوبړن:(چوب-ړَن)صفت- مذکر- (۱)لوڅک- پست- بداخلاقه- (۲)جاهل- ذليل-

چوبندی:(چو-بَن-دی)اسم- مؤنث- دَ کوټې يا منړو دَ ديوالونو او غټو بشونو تر مينځ لره برخه-

چوبول:(چو-به-وَل)مصدرِ متعدی- وګوریٔ سوځول-

چوپ:(چوپْ)اسم صفت- واحد- مذکر- غلے- خاموش- چپ-

چوپ:(چوپْ)اسم- واحد- مذکر- چوب- لرګے- کوتک- (فارسی)-

چوپاتکه:(چو-پا-تهٔ-که)اسم- مؤنث- کتولے- دَ اينځرانو دَ راټولو آله-

چوپار:(چو-پارْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوپال- چوپاړ- څېره- څېرې- ساله- دوبکوړے- منړو- (۲)دَ غنډېدو ځایٔ- جمع چوپارونه-

چوپاړ:(چو-پاړْ)اسم- واحد- مذکر- وګوریٔ چوپار-

چوپال:(چو-پال)اسم- واحد- مذکر- چوپار- وګوریٔ چوپار- جمع چوپالونه-

چوپان:(چو-پان)اسم- واحد- مذکر- شپون- ګډبه- (فارسی)-

چوپان ګرمک:(چو-پان-ګر-مک)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ځنګلی بوټے چې نرمه تنه او سپين ګل لری-

چوپتره:(چو-پت-ره)اسم- مؤنث- يو بوټے چې دَ شفتالو پهٔ شان پاڼې لری او دَ ساګ پهٔ شان پخولے مم شی-

چوپتيا:(چوپ-تْيا)اسم- واحد- مؤنث- چوپوالے- چپوالے- غلے والے- غلے توب- چوپتوب- چپوالے-

چوپټه:(چو-پهٔ-ټه)اسم- مؤنث- هغه لرګے چې دَ ديوال دَ کلکولو دَ پاره پهٔ مره رده (پخڅه) او دَ ديوال پهٔ سر کښې لګولے کيږی- (افغانستان)-

چوپر:(چُو-پَر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ابلک- برګ- ابلق- دوه رنګے- (۲)راچاپېر- چاپېر-

چوپرکټ:(چو-پَر-کَټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پالنګی کټ- ښائسته کټ- (۲)دَ زنانه دَ کفن سره ښائسته شال چې پهٔ مړينې ئې يوې ښځې له دَ پلار کورنی کوی-

چوپړے:(چوپ-ړے)اسم- (۱) چکلے- پړونے- بورقه- بورقع- بوکره- (۲)وګوریٔ چوپړ-

چوپړ:(چو-پَړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ شطرنج پهٔ شان يو قسم لوبه- دَ شطرنج پياده- ګونټه- (۲)خدمتګار- چوپړے- خادم- (۳)زحمت- کار- نوکری- خدمت-

چوپړن:(چُوپ-ړَن)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې سترګې ئې اُبڼې او چخې کوی- دَ چوخړو سترګو خاوند- چخن- زوبلن- چوخړن- چخړن- چوچے-

چوپړه:(چو-پهٔ-ړه)اسم- مؤنث- زړه پڼه- زړه موچڼه- زړه ماچڼه- چپره- زړه چيتره-

چوپړين:(چوپ-ړين)اسم صفت- شوړ- چوپن- خوړين سترګے- چکان- چوپنې سترګې لرونکے-

چوپړی:(چُوپ-ړی)اسم- مؤنث- اَبری- چوپری- شړومبی-

چوپړی:(چوپ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- جومپړی- جونګړه- څپر- کوډله- کوډی- څپری- خونه- خونکی- کوټځه- څپره- ځاله- کېږدی-

چوپړے:(چوپ-ړے)اسم- واحد- مذکر- نوکر- خادم- خدمتګار- روزدار- دوربه- چوپړ- چوکر- دربه-

چوپل:(چُو-پَل)مصدرِ متعدی- ژول- رودل- رول- ژوول- پهٔ شونډو يو څيز داسې راکښل چې پوټکے ئې پاتې شی او دَ مينځ رس ترې راکاږلے شی- چوپول- چپول- څبېښل- شپېلل- چوول-

چوپلے:(چُو-پهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چوپلی- مؤنث چوپلې- وګوریٔ چوپل-

چوپن:(چُو-پَن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګوریٔ چوپړن-

چوپنه:(چُو-پهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ چوپل-

چوپنه:(چُو-پهٔ-نه)اسم- مؤنث- دَ ماشومانو دَ چوپلو څيز-

"ئ" (ڼې-زل)، "ې" (مې-ره-وَل)، "ی" (پيا-لی)، "ے" (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګوریٔ تشريحات صفحه ۱

چوپنی:(چو-پهٔ-نی)اسم- مونث- أبخنۍ- انژنې-
چوپنۍ:(چو-په-نۍ)اسم- واحد- مذکر- پوچکه- د صابون پوچک یا د کورتو وړه ټوټه- د صابن وړه حصه- لږه حصه-
چوپنۍ:(چو-په-نۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خوږې ګولۍ- چاکلېټ-
چوپنۍ:(چو-پهٔ-نۍ)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے یا پوست څیز چې د ماشومانو د غاښونو په کېدلو کښې مرسته کوی-
چوپول:(چو-په-ول)مصدر متعدی- وګورئ چپول-
چوپون:(چو-په-ون)حاصل مصدر- وګورئ چوپول-
چوپونکے:(چو-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوپونکی- مؤنث چوپونکې- وګورئ چوپول-
چوپونګ:(چو-په-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چوپول-
چوپونه:(چو-په-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوپول-
چوپوهٔ:(چو-په-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چوپول-
چوپه:(چو-په)اسم- مؤنث- خروبونه- سېرابونه-
چوپه:(چو-په)اسم- مؤنث- څوپه- څپک- څپق- څلور ګټې-
چوپه:(چو-په)اسم- مؤنث- (۱)قافله- کاروان- (۲)پوچه- د خټو پلستر- د خټو لېو- پونچه-
چوپه چوپیا:(چو-په-چوپ-یا)اسم مرکب- مؤنث- قلاره قلاری- خاموشي- قلاره قلاری- چوپه چوپتیا- ارامه ارامتیا- چپه چپیا- شومه دم-
چوپېدل:(چو-پې-دل)مصدر لازم- ارامېدل- کرارېدل- قلارېدل- غلے کېدل- خاموشه کېدل- چپ کېدل-
چوپېدن:(چو-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چوپېدل-
چوپېدنګ:(چو-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوپېدل-
چوپېدنه:(چو-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوپېدل-
چوپېدونکے:(چو-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوپېدونکی- مؤنث چوپېدونکې- وګورئ چوپېدل-
چوپېدهٔ:(چو-پې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چوپېدل-
چوپېر:(چو-پېر)صفت- وګورئ چاپېر- (عامیانه قرأت)-
چوت:(چوت)اسم- مؤنث- چیت- د ښځې پټ اندام- د ښځې عضو خاص- چوډ-
چوت:(چوت)صفت- (۱)اوچت- دنګ- لوړ- (۲)تېز- څلاکه- متے- زندے- چالاک-
چوتار:(چو-تار)اسم- واحد- مذکر- (۱) یو قسم ټوکے یا لټه چې تنسته بوده ې د څلورو څلورو تارونو وی- دوسوتی اعلیٰ قسم صفا کپړه- خامتا شوې- د یو پخوانی سپین ټوکی نوم- سپین او ښائسته ټوکے- چارسوتی کپړه- (۲)یو قسم ساز- (۳)وړه خبره-
چوتاله:(چو-تا-له)اسم- مؤنث- د دولسو ماترو یو تال-

چوتانکی:(چو-تانګ-کی)اسم- مؤنث- د اوښ د کټې لهٔ زیرو جوړه کړی- د اوښ د زین د زیرو کړی-
چوتانی:(چو-تا-نی)اسم- مؤنث- د کټ لنګه-
چوتره:(چوت-ره)اسم- مؤنث- (۱)صوفه- صوپه- ړبه- ړپه- د ناستې ځایٔ- دوکانچه- (۲)هواره او وړه موړه- جمع چوترې-
چوتکے:(چوت-کے)اسم- واحد- مذکر- څټ-
چوتکے:(چوت-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- پوچ- بې حیا- بې پردې- بې ادبه- نالائق- نامناسب- بې ننګه-
چوتیا:(چوت-یا)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مفعول- ګانډو- (۲)بې غېرته- (۳)بې اعتباره- ناکاره-
چوتیاتوب:(چوت-یا-توب)اسم- مذکر- (۱)ناکاره توب- ناکاره والے- بې اعتباری- بې اتباری- (۲)ګانډوتوب- مفعول توب- مفعول والے- (۳)بې غېرتی-
چوتے:(چو-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)لنګ- لنګوټے- وړوکے لنګ- نېکر- لنډکے لنګ- لنډ پرتوګ- (۲)هغه رسی چې د اوښ بار پرې تړلے شی- (۳)چتے- (۴)تړاکے-
چوټ:(چوټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)تکلیف- (۲)خربه- حمله- (۳)عشق- د مینې صدمه- (۴)ګوزار- غزار- درز- (۵)ټېله- دیکه- ټکره- (۶)حادثه- افت- (۷)باری- وار- نمبر- (۸)فکر- اندېښنه- اند- خیال- (۹)تاوان- (۱۰)اعتراض- سخ- (۱۱)چیټ- یو قسم کپړه-
چوټ:(چوټ)اسم صفت- (۱)ببخی- بالکل- قطعی- کافی- پوره- (۲)وړوکے-
چوټ:(چوټ)اسم- د یو شی زیات استعمالونکے یا پرې پوهېدونکے-
چوټ انداز:(چوټ-ان-داز)اسم مرکب- (۱)اندازه- اټکل- قیاس- تخمین- (۲- صفت)اټکلی- توکلی- چوټ اندازه-
چوټ اندازه:(چوټ-ان-دا-زه)صفت- وګورئ چوټ انداز-
چوټکه:(چو-ټه-که)اسم- واحد- مؤنث- چونټه- کونځۍ- کمڅۍ- چوټۍ- څنې- کونځۍ کړی وېښتهٔ- چوټے- څړی- چارخولګ- بوتۍ- بودی- بوتکه- څونډے- قرقره- څونکه- پیاده- جېغه- چچه- شمله- پټکے- جمع چوټکې-
چوټول:(چو-ټه-ول)مصدر متعدی- (۱)چوټ کول- وړل- تښتول- (۲)غلا کول- پټول- پهٔ غلا وړل- (۳)بارول- درنول-
چوټون:(چو-ټه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چوټول-
چوټونکے:(چو-ټه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوټونکی- مؤنث چوټونکې- وګورئ چوټول-
چوټونګ:(چو-ټه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چوټول-
چوټونه:(چو-ټه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوټول-
چوټوهٔ:(چو-ټه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چوټول-
چوټه:(چو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چاره- علاج- غم خوړنه- چېټه-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-هې-دهٔ)

(۲)پرله پسې کار کونه- په یو مخ کار کونه-

چوټه:(چ-وه-ټه)اسم- واحد- مؤنث- څپلۍ- کېړۍ- چپلۍ-

چوټۍ:(چو-ټۍ)اسم- مؤنث- سټوکے- څټۍ- چوټی- د ښځې د سر وېښته چې ښی او کس اړخ ته ئې راخواره کړی وی- یعنی کمڅۍ شوی نه وی- د ښځې د سر وړده وېښته-

چوټۍ:(چُو-ټۍ)اسم- واحد- مؤنث- رخصتی- تعطیل- هغه ورځ چې د معمول کار پکښې نه کیږی-

چوټۍ:(چو-ټۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څپلۍ- کېړۍ- چپلۍ- (۲)لونګ- (۳)چونټۍ-

چوټېدل:(چو-ټې-دَل)مصدر لازم- پوره کېدل- په مقابله یا جنګ کښې برابرېدل- مخے کېدل- (۲)وړلے کېدل- تښتولے کېدل- غ(۳)بارېدل- درنېدل-

چوټېدن:(چو-ټې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چوټېدل-

چوټېدنګ:(چو-ټې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوټېدل-

چوټېدنه:(چو-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوټېدل-

چوټېدونکے:(چو-ټې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوټېدونکی- مؤنث چوټېدونکې- وګورئ چوټېدل-

چوټېدهٔ:(چو-ټې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چوټېدل-

چوټۍ:(چو-ټۍ)اسم- مؤنث- بوتی- څېړۍ- څڼګه- چارخول- تاج-

چوجکۍ:(چو-ج-کۍ)اسم- مؤنث- وګورئ چجکۍ-

چوجۍ:(چو-جۍ)اسم- مؤنث- وګورئ چوچۍ ۲-

چوچ:(چوچ)اسم- مذکر- (۱)رسم- رواج- عادت- دود- دستور- (۲)چوچنے-

چوچاړے:(چو-چا-ړے)اسم- واحد- مذکر- چچاړے- ټاپو- جزیره- د زمکې هغه ټوټه چې ګېر چاپېره ترې اُبهٔ وی-

چوچ سترګے:(چوچ-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې سترګې ئې چوچۍ وی-

چوچک:(چُو-چک)اسم- واحد- مذکر- چوچه- چرګوټے- چرګوړے- چچوڼے- ورانکارے ملک- شیطان ملک- شوخ ملک-

چوچ نهل:(چوچ-نهٔ-هل)مصدر- د مرز تښتېدل او جنګ پرېښودل-

چوچنے:(چو-چهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چوخنے-

چوچڼے:(چو-چهٔ-ڼے)اسم- واحد- مذکر- ارمنډه-

چوچو:(چُو-چُو)اسم- د ماشومانو په ژبه مرغۍ یا ړوړۍ ته ونیلے شی-

چوچوړے:(چو-چو-ړے)اسم- د مرغیو او چرګانو کنه- کونے- شینے- شونے-

چوچول:(چُو-چه-ول)مصدر متعدی- مرزان یو بل ته د جنګ د پاره مخامخ کول-

چوچون:(چُو-چه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چوچول-

چوچونکے:(چُو-چه-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوچونکی- مؤنث چوچونکې- وګورئ چوچول-

چوچونګ:(چُو-چه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چوچول-

چوچونه:(چُو-چه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوچول-

چوچوڼے:(چو-چو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- چوچک- چرګوټے- چرګوړے-

چوچۍ:(چو-چۍ)اسم- واحد- مؤنث- غرڅنے چرګ- د غرهٔ چرګ- صحرانے چرګ- صحرائی چرګ- غرنے چرګ- ځنګلی چرګ- کرمنګ- کورمنګ- قرقاول-

چوچۍ:(چو-چۍ)اسم- واحد- مؤنث- ورکوټې جاروکۍ چې د چڼنو یا نورو تېرو وېښتو نه جوړه وی او د رنګ او چونې کار پرې کولے شی-

چوچۍ:(چو-چۍ)اسم- واحد- مؤنث- کیسی- خلګۍ- بوځکۍ- خلتګۍ- پټاکېدانه- هغه کیسۍ چې پکښې پیسې ټکې ایښوے شی-

چوچے:(چو-چے)اسم- واحد- مذکر- چرګوړے- بچے- چیچے- چوچوڼے-

چوچے:(چو-چے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې سترګې ئې چخې او اُبهٔ کوی- چخن- چخړن- چوپړن- (۲)اُبخنې- چوخنې سترګې- چوپنې-

چوخ:(چُوخ)اسم صفت- واحد- مذکر- ټوغ- کوږ- کړوپ- ملاټیټے- شاټیټے- شاکوپے- کوپے-

چوخ:(چوخ)اسم- چخ- خښونه- منډنه- ټومبنه- ننه ابستنه-

چوخانۍ:(چو-خا-نۍ)اسم- پمبه-

چوخانۍ چوخانۍ:(چو-خا-نۍ-چو-خا-نۍ)اسم مرکب- ربز مربز-

چوخت:(چوخت)صفت- جخت- پېوست- نښتے- متصل- ورځېرمه- ورڅرمه-

چوخته:(چوخ-ته)اسم- مؤنث- کوره- سمڅه- سمڅ- ښمڅ- غار- ړوغله- سوړه- ګاره-

چوخړکه:(چوخ-ړ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سپنګور- سپنګېر- کروړه- کرېړه- یو قسم اغزن بوټے چې مېوه ئې وړومبے سره او وروستو توره شی- (۲)چوکه- سپرخی-

چوخړن:(چوخ-ړن)اسم صفت- واحد- مذکر- چخن- چوخن- زوبلن- چخړن- چیخن- چخے- چوپړن- پخړن-

چوخړه:(چوخ-ړه)اسم- مؤنث- وګورئ چخړه-

چوخړی:(چوخ-ړی)اسم- جمع- مذکر- چخی- چخړی- چیخړی- چوخڼی-

چوخشو:(چوخ- شو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چکښو-

چوخښکے:(چو-خښ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د سترګې هغه ګُټ چې غوږ طرف ته وی- (۲)وښکے-

چوخکه:(چو-خ-که)اسم- واحد- مؤنث- هغه کلکه لښته چې په سر کښې ئې ستن یا مېخ ټکوهلے شوے وی او غوایان یا خرهٔ پرې چوکه کوی- چخله- چوخله- چوکه-

چوخل:(چو- خل)اسم- واحد- مذکر- چوغل- سیکی- ښوئنده آله- نخچک-

ټ" (ټې-رل)، ي"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لي)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

نخښک- یخ مالک- دَ یخ مالک آله-

چوخل:(چو-خل)مصدر- سکونېل- چیخل- چوخول-

چوخله:(څو-خ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چوخکه-

چوخلۍ:(چو-خ-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- وُچته ټوپۍ- جګه خولۍ-

چوخلے:(چو-خۀ-لے)اسم- واحد- مذکر- جمع چوخلي- هغه تېرۀ لرګے چې وړی پرې سپینولے شي-

چوخ مخے:(چوخ-م-خے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- تپل مخے- تپلے- برګ مخے- چیچکی- چیچک مخے-

چوخن:(چو-خن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- پخړن- چوخنے-

چوخنے:(چوخ-نے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- چوخړن- چیخن- چخن- چوچنے- دَ چوخړو سترګو خاوند- زوبلن- چخن-

چوخنه:(چوخ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چخړه-

چوخنے:(چوخ-نے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- چخړے- چوخړے- چوخنے-

چوخول:(چو-خه-ول)مصدر متعدی- چوکه کول- سوخول- سوغول- چوخ کول- ېخییل-

چوخول:(چو-خه-ول)مصدر متعدی- راټیټول- کړوپول- کړول-

چوخون:(چو-خه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخول ۱-

چوخون:(چو-خه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخول ۲-

چوخونکے:(چو-خه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوخونکی- مؤنث چوخونکې- وګورئ چوخول ۱-

چوخونکے:(چو-خه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوخونکی- مؤنث چوخونکې- وګورئ چوخول ۲-

چوخونګ:(چو-خه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخول ۱-

چوخونګ:(چو-خه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخول ۲-

چوخونه:(چو-خه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخول ۱-

چوخونه:(چو-خه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخول ۲-

چوخونے:(چو-خو-نے)اسم- واحد- مذکر- چوکه- چیکه- چېکه-

چوخه:(چو-خه)اسم- واحد- مؤنث- چوغه- قبا- شوکه- شوقه- پشمی یا وړینه چوغه-

چوخه:(چو-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خموالے- کړوالے- کوږوالے- (۲)دَ څۀ څیز دَ وُچتولو دَ پاره اوګه ورکونه-

چوخی چوخی:(چو-خی-چو-خی)اسمِ صفت- مرکب- قوتی قوتی- خاپ خاپ- داغ داغ- لکه لکه- خپ خپ- ټپ ټپ-

چوخے:(چو-خے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)شاټیټ- شاکوپے- کړوپے- کوپا- کوپ- کوپے- شاټیټے- قوبے- ملاټیټے- (۲)ټکی مخے- تپلے- تپل مخے- چیچکے- چخن مخے-

چوخېدل:(چو-خې-دل)مصدر لازم- ټیټېدل- ګړبېپېدل- کړوپېدل- کوپېدل-

چوخېدل:(چو-خې-دل)مصدر لازم- چوکه کېدل- سوخېدل- څوخېدل- سوغېدل-

چوخېدلے:(چو-خې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چوخېدلی- مؤنث چوخېدلې- وګورئ چوخېدل ۱-

چوخېدلے:(چو-خې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چوخېدلی- مؤنث چوخېدلې- وګورئ چوخېدل ۲-

چوخېدن:(چو-خې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخېدل ۱-

چوخېدن:(چو-خې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخېدل ۲-

چوخېدنګ:(چو-خې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخېدل ۱-

چوخېدنګ:(چو-خې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخېدل ۲-

چوخېدنه:(چو-خې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخېدل ۱-

چوخېدنه:(چو-خې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوخېدل ۲-

چوخېدونکے:(چو-خې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوخېدونکی- مؤنث چوخېدونکې- وګورئ چوخېدل ۱-

چوخېدونکے:(چو-خې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوخېدونکی- مؤنث چوخېدونکې- وګورئ چوخېدل ۲-

چوخېدۀ:(چو-خې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چوخېدل ۱-

چوخېدۀ:(چو-خې-دۀ) حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چوخېدل ۲-

چوخۍ:(چو-خۍ)اسم- واحد- مؤنث- چوکه- لښته- چمکی- وړه چوکه- چیکه- تېرۀ او نازکه لښته چې دَ غوایانو دَ شړلو دَ پاره پکارولے کیږی-

چود:(چود)اسم- واحد- مذکر- چاؤد- درز- چودے- پراوېز- چو-

چودری:(چود-ری)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)مشر- سرکرده- ملک- (۲)معتبر- (۳)زمیدار- زمیندار-

چودری توب:(چود-ری-توب)اسم- (۱)مشری- ملکی- سرکردګی- (۲)خان لوئ او معتبر کېدنه-

چودل:(چو-دل)مصدر لازم- وګورئ چاودل-

چودن:(چو-دن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چدن-

چوړوکۍ:(چو-ړو-کۍ)اسم- مؤنث- خور- کلک خور- دَ هندوانې خټکی وغېره پوستکے- سربېره برخه- چوړے-

چوړه:(چو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ لرګی ټوکړه- دړه-

چوړے:(چو-ړے)اسم- وګورئ چوړوکی-

چور:(چور)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوټ- تالا- (۲)هغه تېرۀ کانړے چې شپانۀ پرې دَ ضرورت پۀ وخت کښې ځاروی حلالوی- چورے- چښنکے-

چور:(چور)اسمِ صفت- واحد- مذکر- جمع چورونه- (۱)رېز مرېز- ټوټې ټوټې- (۲)بالکل- بېخی- جمع چورونه-

چور:(چور)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترازه- قره- پره- ړکره- تره- (۲)غل- غلاکړے-

زبر "(خ-بۀ-ره)، زورکے "(شل)، پېښ "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ۀ "(ز-ړه)، ۀ "(ړو-بې-دۀ)

چور :(چور )اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سورے چې دَ اُبو پهٔ بند کښې پیدا
شي او اُبهٔ ترې ځي- (۲)ځرے- سورے- (۳)دره- (۴)دوړه- پوړر- رش-

چورا :(چو-را )اسم- وګورئ باهو-

چوراس:(چو-راس)اسم- واحد- مذکر- (۱)څلورکشته- چې څلور مخه لری-
څلورمخے- (۲)دَ ترکاڼی یو قسم اوزار/آله

چورب:(چو-رب)اسم- واحد- مذکر- یو قسم باز-

چورباتی :(چور-با-تی)اسم- وګورئ چورپاتی-

چورباز :(چور-باز )اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بچه باز- هلک باز-
(۲)بدعمله- بداخلاقه-

چوربازی:(چور-با-زی)اسم- مؤنث- (۱)هلکان ساتنه- هلک بازی- بچه بازی-
(۲)بدعملی- بداخلاقی-

چوربل:(چور-بل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ بزې دَ وېښتو نه جوړ شوے پړے
یا تېرسرے- چربل- دَ چېلۍ دَ وېښتو نه جوړه رسۍ- (۲)دَ اس جلب چې
لهٔ وژغنو او تارونو نه جوړولے شي-

چوربور :(چور-بور )اسم صفت- واحد- مذکر- مغرور- کبرژن- کاکه-

چورپاتی :(چور-پا-تی)اسم- واحد- مؤنث- چوربتی- چورباتی- څراغ-

چورت:(چو-رت)اسم- واحد- مذکر- (۱)چرت- فکر- (۲)اندېښنه- (۲)یو وار
نسوار- یو خله نسوار-

چورتک:(چور-تک)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے-

چورتی :(چو-رهٔ-تی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چرتي- فکرمن- پرېشان-
خفه- دلګیر- اندېښمن- متفکر- (۲)خوشاله- خوش مزاجه- خوش طبیعته-
(۲)عېشی- عېش کونکے-

چورټ:(چو-رټ)اسم- واحد- مذکر- غټ سېګرټ- یو قسم سګرټ- چرټ-

چورچر :(چور-چر )اسم صفت- چور چور- کنډ کپر- کنډ و کپر- مات رامات-
کنډو کنډۆ- دړه داړ- مات ګډ-

چورچکا :(چور-چهٔ-کا )اسم- واحد- مؤنث- دا کلمه دَ "اکابکا" سره یو ځاې
استعمالېږی لکه اکابکا کهٔ چورچکا- دَ یوې لوبې نوم-

چورچور :(چور-چور )اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)کنډ کپر- کنډ و
کپر- کندرې کوندرې- ړانګې ړوبل- (۲)پهٔ نشه کښې مست- بې خوده-
عاشق- سخت عاشق-

چورچورک:(چور-چو-رک)اسم صفت- واحد- مذکر- پوخڼا- معقول- خبرلوځ-
ترټو-

چورچورک:(چور-چو-رک)اسم- واحد.. مذکر- دَ اُبو مور- کیرړے- چرچرک-
یو قسم حشره چې پهٔ شپه کښې دَ چر چر آواز کوی-

چورچورکے:(چور-چو-ر-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چرچورکی-

چورچوری:(چور-چور-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چرچورکی-

چوررنګ:(چور-رنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- چپلیت- نرے-

چورکنډے:(چور-کن-ډے)اسم- مذکر- برندے- څرخندوکے- چرلندے-

چورلکه-

چورکی :(چور-کی)اسم- واحد- مؤنث- مرغابی- یو قسم حلال مارغهٔ-
سائنسی نوم اناس کرېکا (ANAS CRECCA)-

چورلانړس:(چور-لان-ړس)اسم- ګېر چاپېر چورلېدنه-

چورلاوو :(چور-لا-وو )اسم- واحد- مذکر- مشین-

چورلټ:(چور-لټ)اسم صفت- مذکر- (۱)ټول - تمام- بالکل- بېخی-
سراسر- سکوټ- سکټ- ځکټ- کرټ- ګرسره- (۲)کند کپر- ټوټې ټوټې-
چرچور- دړدړ-

چورلټ:(چور-لټ)اسم- واحد- مذکر- ګاڼی کښې چورلېدونکے دَ لرګی ګول
لټ- ارمکے- ارمګ-

چورلټه:(چور-ل-ټه)اسم- مؤنث- وګورئ چورلټ-

چورلک:(چور-لک)اسم- واحد- مذکر- پېر- څرخ- تاؤ- ګردش- دور-

چورلکه:(چور-ل-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پښې مخکښینی او وروستنی
برخه- (۲)دَ لرګی څرخ- چورلندے- چولکے-

چورلکے :(چور-ل-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چورلکه- دَ پښې چورلکه-
چورنکے- (۲)خنجکے- دَ ښځې دَ تناسلی آلت خینجکے-

چورلن:(چور-لن)اسم صفت- ګېر چاپېر- هغه شے چې څوک ترې بچ نهٔ شي-
پهٔ ټولو یو شان-

چورلنده:(چور-لن-ده)اسم صفت- واحد- مذکر- تاوېدونکے- څرخېدونکے-
ګرځېدونکے- سېل کونکے-

چورلندے :(چور-لن-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)څرخندوکے- څرخندنے-
چورلنډے- لاټو- برلندے- چورلے- څرخنے- چورخلک- تلېلے- ګرزندے-
برندے- دَ لرګی څرخ چې ماشومان پرې لوبې کوی- (۲)چاپېره تاوېدنه-
جمع چورلندی-

چورلندے :(چور-لن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ګرځندے- غولی-
غلغلی- چکر- پېر- (۲)ګرباده- دَ پېریانو بړلی- بادامه- ګېر چاپېره
چورلېدونکې او تاوېدونکې اُبهٔ- دَ سیلۍ هغه بادامه چې پهٔ یو ځاې
چورلی او بیا پهٔ پورته الوځی- چورلنډے-

چورلندی :(چور-لن-دی)اسم- واحد- مؤنث- ګرځندے- چورلکه-

چورلنډ :(چور-لنډ )اسم صفت- واحد- مذکر- لغړ- لوچک- اوباش- لنډر-
چورلنډے- جمع چورلنډان-

چورلنډتوب:(چور-لنډ-توب)اسم- مذکر- چورلنډوالے- لغړتوب- اوباشی-
لنډرتوب-

چورلنډوالے :(چور-لنډ-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ چورلنډتوب-

چورلنډے :(چور-لن-ډے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ چورلنډ- (۲)وګورئ
چورلندے- جمع چورلنډی-

چورلول:(چور-له-ول)مصدر متعدی- (۱)ګردش ورکول- څرخول- څرخ ورکول-
تاوول- پېر ورکول- سرګردانه کول- ګېر چاپېره ګرځول-

ئ (ځې-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کبر چاپېره کول- (۲)ګډول- نڅول-

چورلولے:(چور-له-ولـ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع چورلولي- مؤنث چورلولې- وګورئ چورلول-

چورلون:(چور-له-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ چورلول-

چورلونکے:(چور-له-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چورلونکي- مؤنث چورلونکې- وګورئ چورلول-

چورلونګ:(چور-له-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چورلول-

چورلونه:(چور-له-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چورلول-

چورله:(چور-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ اَبو موری- دَ اَبو ورخ- دَ اَبو رو-چورن- (۲)سولولے غز-

چورله بابا:(چور-له-با-با)اسم- واحد- مؤنث- چولانوس- دَ ورو ماشومانو يوه لوبه-

چورلی غرب:(چور-لی-غرب)اسم- مذکر- خودکاره وسلحه- مشين ګن-

چورلېخے:(چور-لې-خے)اسم- مذکر- هغه مېخ چې مشين يا څرخ پرې تاوېږي-

چورلېدل:(چور-لې-دل)مصدرِ لازم- (۱)څرخ خوړل- تاوېدل- څرخېدل- ګردش کول- پېر وهل- کبر چاپېره ګرځېدل- کبرچاپېره کېدل- پېرونه خوړل- (۲)ګډېدل- نڅېدل-

چورلېدلے:(چور-لې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چورلېدل-

چورلېدن:(چور-لې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ چورلېدل-

چورلېدنګ:(چور-لې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چورلېدل-

چورلېدنه:(چور-لې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چورلېدل-

چورلېدونکے:(چور-لې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چورلېدونکي- مؤنث چورلېدونکې- وګورئ چورلېدل-

چورلېدهٔ:(چور-لې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چورلېدل-

چور لېونے:(چور-لې-ؤ-نے)اسمِ صفت- سکټ لېونے- بېخي لېونے- جمع چور لېوني-

چورلی:(چور-لی)اسم- واحد- مؤنث- شپېلق- شپېلک- شپېلے- شورشورے- شپولک-

چورلے:(چور-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چمبر- (۲)چُرلے- چورلکے- (۳)چورلندے- (۴)چارمغز- غز- جوز- اکوړ- مټک- (۵)دَ مشين څرخ- (افغانستان)-

چورلے غرب:(چور-لی-غرب)اسم- مذکر- خودکاره وسلحه- مشين ګن-

چور ماچور:(چور-ما-چور)اسم صفت- وګورئ چور مچور-

چور مچور:(چور-م-چور)صفت- (۱)ريز مريز- ذري ذري- ټوټې ټوټې- بېخي مات- ريچې ريچې- ريچ ريچ- بسمې بسمې- ټکړې ټکړې- چورې چورې- تيکه تيکه- پاره پاره- (۲)سوے لوے- عاشق-

چورمبتی:(چور-مبن-تی)اسم- مؤنث- کربوړے- چرمبکی-

چورن:(چو-رن)اسم- مذکر- تندرکے- دَ اَبو موری- تری- پرناله-

چورن:(چو-رن)اسم- واحد- مذکر- هغه مېده حکيمی دارو چې دَ هاضمې دَ پاره استعمالولے شي- چونړی- تلے- کپ- کپه- پکه- تاک-

چورندک:(چو-رن-دک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چتے-

چورنکے:(چو-رن-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چورلکے-

چورنګ:(چو-رنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ يو وار دَ ښکاروپو ښې پرېکونه- (۲)تېغ- توره- (۳)پرهر- ټپ- زخم- پرمار- دَ توري چلولو مشق- (۴)زخمي- سورے-

چورنګ:(چو-رنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سفوف- (۲)زورنګ-

چورنګے:(چو-رن-ګے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم مرغ- سائنسی نوم کوټرنکس (COTURNIX)- جمع چورنګيان-

چوره:(چو-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ فتق بيماری- دَ دغې ناروغۍ ځاۓ- هغه سړے چې دَ خوټو يا اګيو دَ پاړسوپ پهٔ ناروغۍ اخته وي-

چوره:(چو-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- خوشناکه دره- چوری- جمع چورې-

چوره:(چو-ره)اسم- مؤنث- (۱)يو قسم شيريني- شکره- بوره- چينی- شيرينی- تری- (۲)پوړر- رش- سفوف- (۳)دَ مرغلرو دَ چورې پهٔ شان خلېدونکے-

چوره:(چو-ره)ضمير- څومره-

چوره چوره:(چو-ره-چو-ره)صفت- ريز مريز- ذرې ذرې-

چوری:(چو-ری)اسم- مؤنث- مېده کړے شوې روټۍ چې پکښې غوړی او خواږهٔ ګډ کړے شوی وي- مېده شوے غوړ خوراک-

چوری بردار:(چو-ری-بر-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ غلا مال وړونکے- غلا کړے- مال متہ وړونکے کس- (۲)چوری وړونکے-

چوری چوری:(چو-ری-چو-ری)اسم مرکب- (۱)طوطی يا ښارو له پوړی يا بله خوراکه- خس خس- دَ اَموختهٔ مارغهٔ دَ رابللو آواز- (۲)وګورئ چور مچور- (۳)دَ چوری مياشت-

چوری:(چو-ری)اسم- واحد- مؤنث- مچ بنګ- مچ شړونے- هغه ببوزے چې دَ اس دَ لکې وېښتو نه جوړولے او مچان پرې شړلے شي- تروری- پيک-

چوری:(چو-ری)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)هغه جينی چې پهٔ محفلونو کښې سندرې وائي- مجلسی پېغله- (۲)معشوقه- محبوبه- (۳)ښائسته جينی- (۴)سهېلی- (۵)مزدوره-

چورے:(چو-رے)اسم- (۱)توښه- توشه- خوراک- (۲)توبره-

چورے:(چو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه ځناور چې لم ئې سپين وي-

چورے:(چو-رے)اسم- واحد- مذکر- خوئ- بچے- بچورے- بچوړکے- بچوړکے-

چورے:(چو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)غين- ذکر- دَ نارينه آلهٔ تناسل- (۲)ګډېدونکے- لبنتی- بازينګر-

چوړ:(چوړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوڼ- دَ دروازې یا کټ چوڼ او پونکی- (۲)مغه درز یا سورے چې پۀ لرګی کښې پۀ سولی یا پانه شوے وی- (۳)کړی- غوړاشه- غوړیاشه- غړوندے- جغنډ-

چوړ:(چ-وَړ)اسمِ صفت- وران- تباه- برباد- ویران- خراب- (کول- کېدل مصدرونه)-

چوړ:(چوړ)اسمِ صوت- شوړ- شړ- شور- شورهار- شړپار- شړپهار- دَ اُبو دَ راتوئېدلو آواز-

چوړ:(چوړ)اسم- (۱)بېخ- جندر- جدر- قتل- (۲)کوزېدنه- (دَ اس یا بس نه)- (۲)کنګالونه-

چوړا:(چو-ړا)اسم- واحد- مذکر- ږښے- بنګړے- ګجره- کوجره- چوړے- چورے- چوړاؤ- دَ لاسو کالے-

چوړا:(چو-ړا)اسمِ صفت- واحد- مذکر- چوغ سترګے- چپک- چنګ سترګے- چغ سترګے-

چوړاغ:(چو-ړاغ)اسم- (۱)دَ کاڼی چاؤد- دَ تیږې درز- (۲)دَ اُبو لاره- جمع چوړاغونه-

چوړاو:(چو-ړاو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چوړا-

چوړچوړک:(چوړ-چو-ړک)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ورکوټے ماشوم- طفل- کمکے ملک- کوچنے ماشوم- کوچنے- جمع چوړچوړکان-

چوړک:(چو-ړک)اسم- واحد- مذکر- (۱)قلف- کولپ- کُلپ- کُنجی- تاله- (۲)دَ دروازې اړم- تمبه او توماچو-

چوړکی:(چوړ-کی)اسم- واحد- مؤنث- چوړکی- چړوکی- وړه چاړۀ- چاړۀ-

چوړکه:(چوړ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ اُبو لۀ کبله پۀ زمکه کښې جوړ شوے درز- سمخ- ورد غار- وړده سوړه- (۲)دَ دروازې دَ لرې کولو پۀ وخت دَ دروازې او چوکاټ پۀ مېنځ کښې لږه فاصله- جمع چوړکې-

چوړلونکے:(چوړ-ل-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- سلېښونکے- مښونکے-

چوړنګ:(چو-ړنګ)اسمِ صفت- چونګ اُبۀ- کوټ اُبۀ- لږ څۀ اُبۀ- یو غړپ-

چوړو:(چو-ړو)اسم- مذکر- شخدو- شخه دو- سخدو- سوړے- تبخک- چوړے- شېخدو- یو قسم خړرنګه مرغی چې لکی ئې وړده وی-

چوړول:(چو-ړه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)بربادول- تباه کول- قتلول- ورانول- پوپنا کول- (۲)پلنول-

چوړول:(چو-ړه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)شوړول- چړول- (۲)بېول- جاری کول- لږې لږې اُبۀ چړول یا تویول- (۳)کوزول- بښکته کول-

چوړون:(چو-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړون:(چو-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړونکے:(چو-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوړونکی- مؤنث چوړونکې- وګورئ چوړول-

چوړونکے:(چو-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوړونکی- مؤنث چوړونکې- وګورئ چوړول-

چوړونګ:(چو-ړه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړونګ:(چو-ړه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړونه:(چو-ړه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړونه:(چو-ړه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړوۀ:(چو-ړه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړوۀ:(چو-ړه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړول-

چوړه:(چو-ړه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- (۱) کونړه- بدلمنه ښځه- (۲)بې خایه-

چوړمار:(چوړ-مار)اسمِ صوت- دَ تېزو اُبو دَ بهېدو آواز- شورهار- شوړمار- شړپهار- شړار-

چوړیا:(چو-ړیا)اسم- مؤنث- یو قسم کپړه چې پرې کربښې وی-

چوړیل:(چو-ړه-یل)مصدرِ متعدی- پۀ سر پښو یا بل لېسدار څیز دوه څیزونه پېوست کول- نښلول- مښلول- خنجول- سلېښول- سرېښول- پېوست کول-

چوړیلے:(چو-ړه-یۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چوړیل-

چوړینه:(چو-ړه-یۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړیل-

چوړیونکے:(چو-ړه-یون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چوړیل-

چوړېدل:(چو-ړې-دَل)مصدرِ لازم- بربادېدل- تباه کېدل- قتلېدل- ورانېدل- پوپنا کېدل-

چوړېدل:(چو-ړې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)چړېدل- جاری کېدل- دَ اُبو بهېدل- (۲)کوزېدل- بښکته کېدل-

چوړېدلے:(چو-ړې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع چوړېدونکی- مؤنث چوړېدونکې- وګورئ چوړېدل-

چوړېدن:(چو-ړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړېدل-

چوړېدن:(چو-ړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړېدل-

چوړېدنګ:(چو-ړې- دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړېدل-

چوړېدنګ:(چو-ړې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړېدل-

چوړېدنه:(چو-ړې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړېدل-

چوړېدنه:(چو-ړې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ چوړېدل-

چوړېدونکے:(چو-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوړېدونکی- مؤنث چوړېدونکې- وګورئ چوړېدل-

چوړېدونکے:(چو-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع چوړېدونکی- مؤنث چوړېدونکې- وګورئ چوړېدل-

چوړېدۀ:(چو-ړې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چوړېدل-

چوړېدۀ:(چو-ړې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چوړېدل-

چوړېل:(چو-ړېل)اسم- مذکر- رانخړۀ- نباتاتی نوم سیډرس دېوداره (CEDRUS DEODARA)-

ئ" (څی-رل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

چوړے:(چو-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چواړے- مُسلی- بنګی- مهتر- خاکروب- شاخېل- تک تور- چنګړے- چنګړ- (۲)هغه سړے چې د مجرم د پانسی کولو په وخت د کومی ځرخ تاووی- (۳)کم ذاته- (۴)د عیسائی قوم یو غړے- جمع چوړیان- مؤنث چوړی-

چوړے:(چو-ړے)اسم صفت- مذکر- (۱)بېبون- (۲)پړے- (۳)چپول- (۴)چوړو-

چوز:(چوز)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د باز یو قسم- چکرباز- د ښکار د پاره نوے تیار شوے باز- (۲)یو کلنے باز- د باز بچے- (۳)د ښځو اندام نهانی-

چوزا:(چو-زا)اسم- واحد- مذکر- د تپوس یو قسم-

چوزه:(چو-زه)اسم صفت- واحد- مؤنث- پې مخې ښځه- ښلکلې ښځه- ښانسته ښځه-

چوزه:(چو-زه)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوزے- چرګوړے- (۲)د کم عمر- پټه- (۳)ښانسته هلک-

چوزے:(چو-زے)اسم صفت- واحد- مذکر- چغری- نازک- کاغذی- چغجی- کوغذی-

چوزے:(چو-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چرګوړے- د چرګې بچے چې د حلالولو جوګه وی- (۲)دوزې بېړی (سپېنته)-

چوس:(چُوس)اسم- واحد- مذکر- (۱)کم قیمته څیز- بې قیمته څیز- (۲)د ځاروی لری کولمې- (۳)لید- نظر- حس- لمس- تماس-

چوس:(چوس)اسم صفت- واحد- مذکر- خسیس سړے- چوسک- خساست-

چوسار:(چو-سار)اسم- واحد- مذکر- (۱)شرمخ- لېوه- رنده- (۲)سوان- یو قسم سوان (سوهان)- سیون- سوهن- سپین توړے-

چوستے:(چُوس-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ځناور لرې کولمې- پتروجی- (۲)د خېټې پرده- د نس برنغ یا پرده- څوښتے- څښکوړے-

چوس خور:(چُوس-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- شوم- بخیل- وږ سترګے- چوسکن- ارواوړے- سترووړے- چوساوڼ- لالچی-

چوسر:(چُو-سر)اسم- د شطرنج په شان یوه لوبه-

چوسک:(چُو-سک)اسم- تلاش کونه- په یو څیز پسې ګرځېدنه- لټونه- چوس-

چوسک:(چُو-سک)اسم- صفت- واحد- مذکر- وګورئ چوس-

چوسکن:(چُوس-کن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چوس خور-

چوسکنتوب:(چُوس-کن-توب)(۱)وږسترګی- (۲)بُخل- شوموالے- بخیل توب-

چوسکول:(چُوس-کهٔ-نه-ژل)مصدر متعدی- د چوس عادت پکښې پېدا کول- اروا وږے کول- بدخویه کول-

چوسکنونکے:(چُوس-کهٔ-نه-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- اروا وږے کونکے- وږسترګے کونکے- د چوس عادت پکښې پېدا کونکے-

چوسکنېدل:(چُوس-کهٔ-نې-دل)مصدر لازم- شوم کېدل- بخیل کېدل- اروا وږے کېدل- د چوس عادت پکښې پېدا کېدل-

چوسکنېدن:(چُوس-کهٔ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چوسکنېدل-

چوسکنېدنګ:(چُوس-کهٔ-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوسکنېدل-

چوسکنېدنه:(چُوس-کهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوسکنېدل-

چوسکنېدونکے:(چُوس-کهٔ-نې-دون-کے)اسم صفت فاعل- واحد- مذکر- جمع چوسکنېدونکی- مؤنث چوسکنېدونکې- وګورئ چوسکنېدل-

چوسکنېدهٔ:(چُوس-کهٔ-نې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چوسکنېدل-

چوسل:(چو-سل)مصدر متعدی- (۱) چوسول- چوپل- راکښل- چوول- رودل- په خُلهٔ د څهٔ زینه یا رس راکښل- (۲)احساسول- لمس کول- سره لګېدل-

چوس مار:(چوس-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ږوږی غړپ-

چوسه:(چو-سه)اسم- مؤنث- سستی- لټوالے- کاهلی- کهالی- لټی- تنبلی- ناراستی-

چوسے:(چو-سے)اسم- واحد- مذکر- د ترکاڼ اوزار چې د لرګی کوږ سورے نېغوی-

چوسی:(چو-سي)اسم- مؤنث- چمبېره- جوړی- چولے- چښکے-

چوشتے:(چوش-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چوښتے-

چوشک:(چو-شک) اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه بوتل چې ماشومانو له پرې پئ ورکولے شي- چُشنی- (۲)هغه کوزه چې پکښې څخکوړے وی-

چوشکی:(چوش-کی)اسم- زربلان- څېلانځ-

چوشنی:(چُوش-نی)اسم- واحد- مؤنث- هغه ګول د ربړ شے چې د تی په شان وی او ماشومان یُ چوپی-

چوشی:(چُو-شي)اسم- وګورئ چښکے-

چوښتے:(چوښ-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱) د ځارو غلانځه- (۲)څوښکوړے-

چوښکور:(چوښ-کور)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چوښکه-

چوښکه:(چوښ-که)اسم- واحد- مؤنث- کشکول- څخکوړے- څوښکوړے- چوشکے- چوښکے- چښکوړے- سُنت- څوسکوړے- چوشتے-

چوغ:(چوغ)صفت- واحد- مذکر- (۱) چوغ- چوخ- کوږ- کُبے- ټیټ- قبے- چوغے- کړک- کوړک- (۲)تنګ-

چوغ:(چوغ)اسم- ږوغل- چوغنه- قوتے- هغه سُورے چې پورې راپورې نهٔ وی وتے-

چوغا:(چو-غا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چوغه-

چوغالے:(چو-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اوښانو د ترلو ځایُ- د اوښانو طبېله- (۲)د اوښانو د پچو ېېرے- (۳)د سخا اُبو ږنږ- د سخا اُبو ږوغل- جمع چوغالی-

چوغالے:(چو-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- تاخ- تاخچه- کوغالے-

چوغانے:(چو-غا-نے)اسم- مذکر- ږوغل- کنده- غوچ- کوندره-

چوغ بوغ:(چوغ-بوغ)اسم صوت- غل غوبل- غوغا- شور زوږ- شور بکت- غالمغال- چغ پغ- چوغ پوغ-

چوغ پوغ:(چوغ-پوغ)اسم صوت- وګورئ چوغ بوغ-

زبر"(ځ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زبر رک-تاب)، جزم"(شکون)، ه"(ز-ره)، ۀ"(ږو-بې-دهٔ)

چوغر:(چو-غر)صفت- واحد- مذکر- وګورئ چغر-

چوغړے:(چوغ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- غوړېدلے- وېړ- سپرلے- سپړدے- سپېلے-

چوغ سترګے:(چوغ-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- چغ سترګے- چنګ سترګے- چپلغے سترګے- جمع چوغ سترګي-

چوغښکے:(چو-غښ-کے)اسم- واحد- مذکر- د سترګې هغه کُنج چې د غوږ خوا ته وي- د سترګې کُنج-

چوغک:(چو-غک)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو قسم بوټے چې سره مېوه نيسي اومېوې ته ئې جنجوغے وائي- د پېچش او د دستونو د پاره استعمالولے شي-

چوغکه:(چو-غَ-که)اسم- واحد- مؤنث- کوټواله- چنچڼه- چرچڼه- چنچڼه- يو قسم مرغۍ-

چوغکی:(چو-غهٔ-کی)اسم- (۱)چوغلی- چُغلی- شېطانی- غمازی- چوغولی- (۲)وګورئ ارمڼه-

چوغل:(چو-غل)اسم- مذکر- چوخل- ښخښک- د سکی آله- هغه ښونښنده آله چې د سکی لوبه پرې کولے شي ښونديے- ښوښنديے-

چوغل:(چو-غل)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چغلی خور- غماز- شېطان- چغلی مار- چوغليګور- چوغلګر- (۲)غټ غلبېل- چغل- چېغل- د لويو سوريو غلبېل-

چوغلګر:(چو-غل-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چوغل-

چوغلی:(چوغ-لی)اسم- چوغلګوزی- شېطانی- خبره رسونه- غمازی- مواسی- چوغليګری- خبره وړنه- چغلی- (کول مصدر)-

چوغلی خور:(چوغ-لی-خور)اسم صفت- خبره وړونکے- چوغلی خوړونکے- غماز- شېطان- چوغلی مار- مواس- هغه څوک چې چوغلی کوی-

چوغندر:(چو-غن-در)اسم- چوقندر- چقندر- چغندر- نباتاتی نوم بېټا ولګېرس- (BETA VULGARIS)-

چوغنه:(چو-غهٔ-نه)اسم- ړوغل- ټوټے- ړوغله- کوندرے- کوټے- کوټ-

چوغول:(چو-غه-ول)مصدر متعدی- ټېټول- کږول- ټيټول- کوږکول- کږکول-

چوغون:(چو-غه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چوغول-

چوغونکے:(چو-غه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوغونکی- مؤنث چوغونکې- وګورئ چوغول-

چوغونګ:(چو-غه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چوغول-

چوغونه:(چو-غه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوغول-

چوغوهٔ:(چو-غه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چوغول-

چوغه:(چو-غه)اسم- واحد- مؤنث- قبا- چغه- چوخه- شوکه- شوقه- يو قسد چپنه-

چوغه:(چو-غه)اسم- مؤنث- کوږوالے- خم والے-

چوغېدل:(چو-غې-دل)مصدر لازم- کږېدل- ټيټېدل- کوږکېدل- ټيټېدل-

چوغېدن:(چو-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چوغېدل-

چوغېدنګ:(چو-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوغېدل-

چوغېدنه:(چو-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوغېدل-

چوغېدونکے:(چو-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوغېدونکی- مؤنث چوغېدونکې- وګورئ چوغېدل-

چوغېدهٔ:(چو-غې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ چوغېدل-

چوغې سترګے:(چو-غې-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- چوچے- هغه څوک چې سترګې ئې وړې وی او نظر ئې کم وی-

چوغے:(چو-غے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټيټا- کوپے- کوبے- کوپے- قوبے- هغه څوک چې ملا ئې ټيټه وی- (۲)چوغ سترګے- تنګ سترګے- چوچے- هغه څوک چې سترګې ئې وړې وی- مؤنث چوغې-

چوف:(چوف)اسم- واحد- مذکر- دم پوکونه- چُف- کوف- دم- جمع چوفونه- (کول- کېدل مصدرونه)-

چوک:(چوک)اسم- واحد- مذکر- (۱)څارسو- د څلورو لارو يا سړکونو يو بل سره د ملاوېدو يا پرېکولو ځائ- (۲)هغه ځائ چې د کلی اولس خلق پکښې ټولېږی- چونګ- حجره- ډېره- جمع چوکونه-

چوک:(چوک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پهٔ يوه سترګه ړوند- يو سترګے- (۲)لږ څيز- پوټے- ذره- نوکے- بکسکے- (۳)نقصان- کمے- زيان- (۴)ببړی- سولېدلې سپښته- چتره- سولولې شوی ببړی-

چوک:(چوک)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ ګوډو شوے اوښ- (۲)خسی شوے اوښ- (۳)د اوښ د خوب د پاره کښېناستنه-

چوک:(چوک)اسم- (۱)د خوښې کار- د زړهٔ کار- پهٔ طبع برابر- برابر کار- پهٔ طبيعت برابر کار- د طبيعت موافق کار- مطلوبه چاره- د مرضی کار- (۲)پک- جمع چوکونه-

چوک:(چ-وک)اسم- واحد- مذکر- هغه لښته چې اُبهٔ يا د اُبو پهٔ شان بل نرم څيز پرې اندازه کولے شي- کټے- جمع چوکونه-

چوک:(چوک)ضمير- څوک-

چوکاټ:(چو-کاټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د دروازې هغه برخه چې تمبې پکښې ګرځی- قالب- د ور فريم- اړانه- چوکټ- چارچوب- هغه څلور لرګی چې تمبه پکښې لګولے شي- د دروازې هغه څلور څنډيزه برخه چې پلې پکښې نصب وی- (۲)محدود- تعين- تعين شوی شرائط- متعين حدود- حدود- جمع چوکاټونه-

چوکاټکے:(چو-کاټ-کے)اسم تصغير- واحد- مذکر- وړوکے چوکاټ- اړانه- جمع چوکاټکی-

چوکاټی:(چو-کا-ټی)اسم صفت- واحد- مذکر- د چوکاټ- چوکاټ ته منسوب- پهٔ چوکاټ مربوط- جمع چوکاټی-

چوکتار:(چوک-تار)اسم- واحد- مذکر- د چوکې مېخ- هغه مېخ چې پهٔ چوکه

کښې دَ غوایانو دَ شړلو دَ پاره تړ وهلے شی-

چوکټ:(چو-کټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چوکاټ-

چوک چوک:(چوک-چوک)اسم صفت- لږ شان- کم کم- پخه پخه- ذره ذره- لږ لږ- چونګ چونګ- پوټے پوټے- بکسکے بکسکے-

چوک چوک:(چوک-چوک)اسم مرکب- دَ هغه اواز تلفظ چې دَ ژبې دَ سر او پورتنی تالو تر مېنځ دَ هوا تېرېدو څخه راوځی- دغه آواز دَ زړهٔ سوی، افسوس او حسرت پهٔ وخت کښې ایستلے شی- هغه آواز چې دَ خلې نه دَ افسوس پهٔ وخت وځی- دَ افسوس کلمه-

چوک چوکه:(چوک-چو-که)اسم- آوازه- زنګه- زمزمه- شوره- شهره- خبره خورېدنه- آوازه کېدنه-

چوکر:(چو-کر)اسم صفت- واحد- مذکر- خدمتګار- نوکر- خادم- مزدور- چاکر- چوپړے- دوربه- دربه-

چوکر:(چو-کر)اسم- مذکر- دَ څناورو خوراک-

چوکره:(چوک-ره)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ساتلے ملک- (۲)تابعدار- دَ بل تابع- (۳)ملک - ماشوم- وړوکے- (۴)نادان- ناتجربه کار-

چوکره توب:(چوک-ره-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ ساتلی ملک پهٔ توګه چا سره وخت تېرونه- ساتلے کېدنه- دَ چورباز سړی ملک یا وړوکے پاتې کېدنه- ملک توب-

چوکری:(چوک-ری)اسم- مؤنث- دَ چلویری ساګ- چوکرے- دَ چولائی ساګ- یو قسم ساګ- نباتاتی نوم ایمېرنتهس پولی ګېمس (Amaranthus poly Gamus)-

چوکرے:(چوک-رے)اسم- مذکر- وګورئ چوکری-

چوکړ:(چو-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې پهٔ زنه یې ږیره وی او نوره نهٔ وی- (۲)ړوند- چوک سترګے- (۳)نوکر- چاکر- غلام-

چوکړک چوکړک:(چوک-ړک-چوک-ړک)اسم صوت- دَ اوبو دَ رابللو آواز-

چوکړه:(چوک-ړه)اسم صفت- مؤنث- خوره او تارتار ږیره- رنګی ږیره- څوکړه ږیره- څوکړه- رنګړی ږیره- چوکړه ږیره-

چوک سترګے:(چوک-ستر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- چغر- یو سترګے- کوږ سترګے- چغ سترګے- هغه څوک چې یوه سترګه یې وړه یا ړنده وی-

چوکک:(چو-کک)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې پهٔ زمکه کښې ښخ وی او ورپورې دام تړلے شی-

چوکل:(چو-کل)مصدر متعدی- چو کول- چوف کول- کوف کول- دمول- دم پهٔ چا پوکول- چف کول- دم اچول- دم کول- دم وربانديې پوکول-

چوکل:(چو-کل)اسم- لږې اُبهٔ- پهٔ غرهٔ کښې وړه چینه- تنکے-

چوکل:(چو-کل)مصدر متعدی- وزن کول- تلل-

چوکله:(چو-کهٔ-له)اسم- مؤنث- وګورئ څلورمځے-

چوکلے:(چو-کهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع چوکلی- مؤنث چوکلې- وګورئ چوکل-

چوکن:(چو-کن)حاصل مصدر- وګورئ چوکل ۱-

چوکندے:(چو-کن-دے)اسم- مذکر- چوپال- پینک- کوټخه- چولندی-

چوکنه:(چو-کهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوکل-

چوکو:(چو-کو)اسم- هغه لښته یا نرے لرګے چې غوایان پرې شړلے شی- قمچینه-

چوکو:(چو-کو)اسم صوت- دَ غوا وغېره دَ شړلو آواز- چوکو چوکو-

چوکو چوکو:(چو-کو-چو-کو)اسم صوت- وګورئ چوکو ۲-

چوکور:(چو-کور)اسم- څلور کوټے- څلور کوټیز-

چو کول:(چو-که-وَل)مصدر متعدی- (۱)پهٔ ګوډو کول- بېټول- څملول- پهٔ څلورو کول- خې کول- اوښ کښېنول-

چوکول:(چو-که-وَل)مصدر متعدی- برابرول- ښهٔ کول- بهترول- پهٔ ذوق برابرول-

چوکول:(چو-که-وَل)مصدر متعدی- کښېنول- لګول- ښخول- پنیرے لګول- کاڼې لګول- بوټے لګول-

چو کون:(چو-که-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چو کول-

چوکون:(چو-که-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چوکون:(چو-که-وَن)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چوکوندی:(چو-کون-دی)اسم- مؤنث- سکنډاره- سکنډی-

چوکونکے:(چو-کون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چوکل-

چوکونکے:(چو-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر جمع چو کونکی- مؤنث چو کونکې- وګورئ چو کول-

چوکونکے:(چو-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوکونکی- مؤنث چوکونکې- وګورئ چوکول-

چوکونکے:(چو-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوکونکی- مؤنث چوکونکې- وګورئ چوکول-

چو کونګ:(چو-که-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چو کول-

چوکونګ:(چو-که-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چوکونګ:(چو-که-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چو کونه:(چو-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چو کول-

چوکونه:(چو-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چوکونه:(چو-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چو کوهٔ:(چو-که-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چو کول-

چوکوهٔ:(چو-که-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چوکوهٔ:(چو-که-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چوکول-

چوکه:(چو-که)اسم- مؤنث- چیکه- چوکتار- چُکه- لښته- هغه لرګے چې سر کښې یې مېخ وی او غوایان پرې شړلے شی- عامه چوکه- چمکی- (۲)ټپکه- دَ هندوانو دَ تندی داغ یا خال- (۳)تېرونه- غړونه- ښکته کونه- (۴)لږه اندازه- کمه اندازه- ذره- وړه ذره- (۵)ملته- ببېړی- مېټے- سولبدلې کیټې- چتره ببېړی- پتله ببېړی- سولېدلې سپښته- (۶)تېز-

(۷)ارمکی-

چوکه:(چو-که)اسم- مؤنث- (۱)دَ هندوانو دَ خوراک دونکاچه-

چوکه:(چو-که)اسم- مؤنث- یو قسم خښته چې دَ عامې خښتې نه نری، خو پلنه وی، دَ بټی دَ خښتو نه علاوه دَ سېمټو او چونې نه هم جوړولے شی-

چوکه:(چو-که)اسم- دَ کاړو، شولو یا بل څهٔ تخم چې پهٔ لاس پهٔ لږه فاصله کښې کرلے شی- ټپه-

چوکه:(چو-که)اسم- مؤنث- (۱)اړکے- پټیره- لړے- (۲)چونکے- تاکی- چونګ-

چوکه:(چو-که)اسم- مؤنث- دَ کرکټ پهٔ لوبه کښې هغه ګوزار چې پړې بال پهٔ ګرړه دَ بونډری لائن نه واوړی- څلور نمبری- څلور منډې- جمع چوکې-

چوکه پوکه:(چو-که-پو-که)اسم مرکب- چېړ چاړ- پچموزې- مخول بازی- جمع چوکې پوکې

چوکه وېش:(چو-که-وېش)اسم دَ زمکې پهٔ لښته وېش-

چوکی:(چو-کی)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چاقو-

چوکی:(چو-کی)اسم- مؤنث- چوکه- لښته-

چوکی چوکی:(چو-کی-چو-کی)اسم صفت- کم کم- لږ لږ- ذره ذره- کم څیز- کم او چونګ مرچونګ ورکول-

چوکیدار:(چو-کی-دار)اسم- واحد- مذکر- محافظ- پهره دار- پېره دار- ساتونکے- ژغورونکے- څوکیدار-

چوکیداری:(چو-کی-دا-ری)اسم- مؤنث- پېره داری- څوکیداری-

چو کېدل:(چو-کې-دل)مصدر لازم- دَ اوښ کښېناستل- خې کېدل- بېټېدل- پهٔ ګوړو کېدل- پهٔ څلورو کېدل-

چوکېدل:(چو-کې-دل)مصدر لازم- پهٔ ذوق برابرېدل- څهٔ کار دَ چا دَ خواهش مطابق سر ته رسېدل- برابرېدل- ښهٔ کېدل- بهترېدل-

چو کېدن:(چو-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چو کېدل-

چوکېدن:(چو-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چوکېدل-

چو کېدنګ:(چو-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چو کېدل-

چوکېدنګ:(چو-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوکېدل-

چو کېدنه:(چو-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چو کېدل-

چوکېدنه:(چو-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوکېدل-

چو کېدونکے:(چو-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چو کېدونکی- مؤنث چو کېدونکې- وګورئ چو کېدل-

چوکېدونکے:(چو-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چوکېدونکی- مؤنث چوکېدونکې- وګورئ چوکېدل-

چو کېدهٔ:(چو-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چو کېدل-

چوکېدهٔ:(چو-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چوکېدل-

چوکۍ:(چو-کۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)څوکۍ- کرسی- پېړی- دَ لرګی نه جوړه دَ ناستې پېړی- (۲)دَ فقیرانو زیارت ته تلل- زیارت ته تلل- (۳)دَ پېره دارو ځائ- څوکۍ- تهانه- مورچل- رسمی چوکۍ- مقام- منصب-

چوکۍ:(چو-کۍ)اسم- مؤنث- (۱)دَ مرزانو دَ نیولو دام- بلبره- دام-بولاره-

چوکے:(چو-کے)اسم تصغیر- لږ کوټی- لکوټی- کم- لږ- ذره- چوک-

چوګان:(چو-ګان)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)یو قسم لوبه- چوکه- اسپ ډنډه- ډنډه- اپړی کاکېش- (۲)انډې انډې- (۳)ډی- لو- چمچاکے-

چوګان:(چو-ګان)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه لوبه چې پکښې لوبغاړی پهٔ اسونو سوارهٔ وی او دَ اوږدو لرګو پهٔ مدد سره پنډوس دَ یو بل ګول ته وړی- پولو- نېزه بازی- سانګه- اس پنډوس (۲)دَ پنډوس وهلو لرګے-

چوګان بازی:(چو-ګان-با-زی)اسم- نېزه بازی- دَ سانګې لوبه- دَ اس پنډوس لوبه- دَ چوګان لوبه- (۲)ډی بازی- لو- چمچاکے-

چوګل:(چو-ګل)اسم- دمول- چوف کږل-

چوګله:(چو-ګهٔ-له)اسم- مؤنث- وګورئ چارسو-

چول:(چول)اسم- واحد- مذکر- (۱)خالی مېدان- تشی مېدان- (۲)بیابان- ډاګ- ډاګه- ډېګلچه- جاړه- شاړه زمکه- مېره- صحرا- دشته- بېدیا- (۳)دَ نارینه آله تناسل-

چول:(چه-ول)مصدر متعدی- ماتول- درز پیدا کول- چاؤد جوړول- چاؤد راوستل- پهٔ مینځ چول- دوه پرته کول- لرګے چول- دړې کول- مېلول- دَ یو سخت او کلک څیز شلول- څیرل-

چول:(چول)اسم- واحد- مذکر- دَ دروازې چوړ- دَ دروازې چونې- دَ ورچوړ- چون-

چول:(چه-ول)مصدر متعدی- اچول- غرځول- اړول- ترېیل- تویول-

چولا:(چو-لا)اسم- واحد- مؤنث- دَ اوږ بلولو دَ سلورو نه جوړ دَ تېلو نغرے چې پکښې باتی لګېدلې وی- چوله-

چولاوه:(چو-لا-وه)اسم- مؤنث- ډېره زیاته تنده- جولاوه-

چولائی:(چو-لا-ئی)اسم- چلوېړے- یو قسم ساګ- چلوائی- تاندوله- تندولے- سزرګلے- (م- فارسی)- نباتاتی نوم اېمېرنتهس پولی ګېمس(Amaranthus Poly Gamus)-

چول داری:(چول-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- زرکوټے تمبو- زرکوټې خېمه-

چولړ:(چو-لړ)اسم صفت- واحد- مذکر- چونړ- لونړ- لنړ- لونړ- لوفر- بدعمله- خوشاټے-

چولک:(چو-لک)اسم- واحد- مذکر- دَ چول تصغیر- دَ ماشوم آله تناسل- څوځی- خوټه- چولکے- چولړ-

چولک:(چو-لک)اسم- (۱)لونده واوره- چپړک- تر برف- (۲)دَ واورې پهٔ شان نرے باران-

ئ"(څی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

چولکے:(چو-ل-کے)اسم- واحد- مذکر- چولک- د ماشوم آله تناسل- څوخی- چولکي-

چولندی:(چو-لن-دی)اسم- واحد جمع- مؤنث- چوکندے- کوټخه- پینک- چوپال-

چولور:(چو-لور)اسم صفت- واحد- مذکر- لونړ- چټ- تچر- دموس- دووس- چولر-

چولول:(چو-له-ول)مصدر متعدی- خله بیرته کول- خبرې کول- څۀ ونېل- خله ویتول- خله خلاصول-

چولون:(چو-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ چولول-

چولونکے:(چو-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع چولونکی- مؤنث چولونکې- وګورئ چولول-

چولونګ:(چو-له-ونګ)حاصل مصدر- وګوری چولول-

چولونه:(چو-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چولول-

چولوۀ:(چو-له-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چولول-

چوله:(چو-له)اسم- مؤنث- د څۀ ونېلو پۀ سبب خُله خلاصونه- د مطلب ونېلو د پاره خُله خلاصونه-

چوله:(چو-له)اسم- مؤنث- (۱)چاؤد- شیله- دُرز- سورے- (۲)مکان- کور- (۴)محله- کوڅه- ټل- (۵)تنګه لار- ډېره تنګه لار- (۶)د هندوانو د خوراک دونکاچه- چوکه- (۷)وګورئ چولا- جمع چولې-

چوله:(چو-له)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هیبتناک- وېرونکے- خوفناک- بې رونقه- هغه څيز يا هغه څوک چې ډېر وران شکل ئې وی او خلق ترې وېريږی- (۲)وار خطا شوے- حیران-

چولیانی:(چول-یا-نی)اسم- واحد جمع- مؤنث- جارګے- خندکے- د ډوډی پخولو وړه کوټه- اشپزخانه- لنګر- منړ- د اخلی پخلی کوټه- منړوګے- باورچی خانه- د اور بلولو کوټکی- پۀ کور کښې هغه ځان له کوټه يا کوټنی چې تش د اخلی پخلی کار پکښې کېدے شی-

چولے:(چ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- درز کړے- چاود شوے- چاک شوے- جمع چولی- مؤنث چولې- وګورئ چول-

چولے:(چو-لے)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو د لوبو غنې، ګړد او ښویه کانړے- تیره-

چولے:(چو-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نیازبین- (۲)مشروټ-

چولے:(چو-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)طرف- خوا- (۲)کوڅه-

چولے:(چو-لے)اسم صفت- خالی- تش- خُشے- سپېرۀ-

چولے:(چو-لے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- چونے- د ماشومانو آله تناسل-

چولی:(چو-لی)اسم- واحد- مؤنث- چوړی- ګجره- بنګړے-

چولی:(چو-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کمرچینه قمیص- چون کړے قمیص- ګونځې قمیص- ګونجې قمیص- (۲)زوړ دام- شکېدلے دام- شلېدلے دام- هغه دام چې څو حلقې ترې پرېوتې وی-

چولی:(چو-لی)اسم- واحد جمع- مذکر- وګورئ چولک-

چوم:(چوم)اسم- واحد- مذکر- د خاورو، خټو يا کبلو هغه غنډه برخه چې د یو ببلچې سره راجُدا شی- چمه- چم-

چوماخه:(چو-ما-خه)اسم- مؤنث- د غوړ شپېلی- جمع چوماخې-

چوماخے:(چو-ما-خے)اسم- واحد- مذکر- داغ- جمع چوماخی-

چومبے:(چوم-بے)اسم- واحد- مذکر- (۱)اونګ دسته- د هاونګ لاستے- د اونګ لاستے- د اوکلی لاستے- شتومے- (۲)مولے- ورد او غنډمنډ شے- د برغی لاستے- مولے- (افغانستان)-

چومر:(چو-مر)(۱)هغه کړی چې د اوښ مُهار پکښې تړلے کیږی- سرمل- (۲)هغه تار يا مزے چې د اوښ پۀ پوزه کښې اچولے شی- (۳)پوز پرېکړے- چې پوزه ئې پرې وی-

چومړدے:(چو-مړ-دے)اسم- واحد- مذکر- د پانېکو مینځمے لرګے- هغه لرګے چې پانېکو ورباندې کرځی- جمع چومړدی-

چومکے:(چو-مه-کے)اسم- واحد- مذکر- چرکوټے- چرکوړے- چچونړے- د چرګې بچے- چمیکے- جمع چومکی-

چومل:(چو-مل)مصدر متعدی- ښکلول- مچول- چپ کول- مچو کول- چپې اخستل- چپې کول- کوکې اخستل- پپه اخستل- بوسه اخستل-

چومن:(چو-من)حاصل مصدر- وګورئ چومل-

چومنړی:(چو-من-ړی)اسم- جمع- مذکر- هغه ډېر ډېر لنډے لرګی چې پۀ دېوال د بلی تړلو نه وراندې کېښودلے شی-

چومنګ:(چو-منګ)حاصل مصدر- وګورئ چومل-

چومونکے:(چو-مون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چومل-

چومۀ:(چو-مۀ)حاصل مصدر- وګورئ چومل-

چومے:(چو-مے)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو یو قسم بیماری چې پکښې ئې د خلې نه لاړې بهيږی-

چومی:(چو-می)اسم- واحد جمع- مؤنث- پپه- چپی- مچه- چپ- چپه- مچکه- کوکی- مچو- چومه- چیکه-

چون:(چ-ون)حاصل مصدر- وګورئ چول-

چون:(چون)کلمۀ استفهام- چوغن- څومره-

چون:(چون)اسم- واحد- مذکر- چاؤد- چوند- درز-

چونبیل:(چون-بیل)اسم- واحد- مذکر- لوئ کچکول- غټ کچکول-

چونتره:(چون-ت-ره)اسم- واحد- مؤنث- دونکاچه- چوتره- سوفه- سوپه- ډپه- ډبه- لوړ ځائ- اوچت ځائ-

چونټه:(چون-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ښځو وړۀ وېښتۀ چې وروستو ئې کمڅې کړی يا ذومبق ترې جوړ کړے وی- قرقره- خونډے- جغه- چوټۍ- ځېمے- چوټکه- چونټی- کمڅی- ځڼی- ځېږ- (۲)شمله- پټکے- جمع چونټې-

چونټی:(چون-ټی)اسم- مؤنث- د سر وړۀ وېښتۀ- چوټی- ځېټی- چوټی-

چونټې:(چون-ټې)اسم- واحد- مذکر- شونټا- چونډې- يو لاسې- شونډې- شونټې- هغه څوک چې يو لاس يې نه وي- ټونډې-

چوند:(چوند)اسم- واحد- مذکر- (۱)چاؤد- چون- درز- چاؤد- نرې سورې- چود- پراوېز- څيره- جرې- وټ- هغه نرې چاؤد چې يې سورې هم نه وي او ړنا پکښې ښکاري- (۲)يو قسم بوټې-

چوندې:(چون-دې)اسم- واحد- مذکر- ارګوړې کونه- په يوه پښه په لاره تلنه- په ځيندرو تلنه-

چونږ:(چونږ)اسم- د ښځې د سر وېښته-

چونډاره:(چون-ډا-ره)اسم- واحد- مؤنث- چونډې- چونګاره- څکونډاره- چونډاکې-

چونډاکې:(چون-ډا-کې)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چونډاره-

چونډامونږ:(چون-ډا-مونږ)اسم صفت- مرکب- مذکر- غټ پټ- ښه څورب- په څلور ځانګه روغ- څرب-

چونډې:(چون-ډې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دوه ګتې- د غټې کرمې او وزيرې ګتې په يو ځاې راټولونه- وار- چونډې نسوار- دومره نسوار چې په ګتو کښې غنده منده ټيکي جوړه کړې شي- (۲)نوکاره- څکونډاره- ټونکه- ټونګاره- چونډاره-

چونډې:(چون-ډې)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ چونټې-

چونسو:(چون-سو)اسم عدد- څلور سوه- (افغانستان)-

چونکه پزه:(چو-نه-که-په-زه)اسم صفت- ورۀکې مندرې پوزه-

چونکې توب:(چون-کې-توب)اسم- بې حيا توب- بې مخې- بې رخې- کلک سترګې- شوخې-

چونکې:(چون-کې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ليندکې- ليندې-

چونکې:(چونګ-کې)اسم- مؤنث- څوکې- پيره- پهره- څوکيدارې-

چونکې:(چون-کې)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)زړۀ ور- تورزن- بهادر- دلاور- بې باک-(۲)ګستاخ- ويټک- بې مخه- سپين سترګې- بې شرمه- بې حيا- هغه څوک چې د چا نه يې سترګې نۀ شرميږي- کلک سترګې- بې شرم- شوخ- شيطان- (۳)مخنث- (۴)سخا- ناولې- بدشکله- (۵)بدعمله-

چونکې:(چون-کې)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرينده- لينډې- زېلچه- (۲)اکوچنې- ماشوم- (افغانستان)-

چونکې:(چ-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چول-

چونګ:(چونګ)اسم- واحد- مذکر- ډېر کم څيز- ډېر لږ څيز- چونګې- د لپې نيمائي- نيمه لپه- قوده- کوده- موټې- موټې نيم- لږ مقدار- د لاس د ورغومې او ګتو برابر- د يو لاس ژورتيا- چې د لاسونو په ورغومې ځائيږي- يو موټې قدري- جمع چونګونه-

چونګ:(چ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چول-

چونګ:(چونګ)اسم صوت- (۱)د چرګوټې آواز- چونګې- (۲)د تغ آواز- د ګوز آواز- د تيز آواز- د تېز نرې آواز-

چونګ:(چونګ)اسم- پټه فيصله- پټه صلاح مشوره-

چونګ:(چونګ)اسم صفت- خورند- اوبزاند-

چونګاره:(چونګ-ګا-ره)اسم- واحد- مؤنث- چونډې- څکونډاره- په دوو ګتو سره څکونډنه- نوکاره- ټونګاره- جمع چونګارې- (لګول مصدر)-

چونګاښ:(چونګ-ګاښ)اسم- واحد- مذکر- پنجه پاڅ- خرچنګ- کونيکبر- کونيکرپ- سرطان- کنجيپور- چنګاښ- يوه آبي حشره- کنيکبر- (۲)د سرطان مياشت- د غبرګولي او زمرې تر مينځه مياشت-

چونګاړن:(چونګ-ګا-ړن)اسم صفت- واحد- مذکر- شور کونکې- چينګن- چونګن- مسې شور کونکې-

چونګ چونګ:(چونګ-چونګ)اسم- لږ لږ- ګوټ ګوټ- لپه لپه- د لږ مقدار څيز- کم کم- بکس بکس-

چونګښه:(چونګ-ګښه)اسم- واحد- مؤنث- چيندخه- چنګښه- څنډخه- څنګښه- څونګښه- څينځښه- جمع چونګښې-

چونګن:(چونګ-ګن)اسم صفت- په سودا اخستو کښې نقص راوېستونکې- په سودا کښې چختې لټونکې-

چونګن:(چونګ-ګن)اسم صفت- واحد- مذکر- ژړندو- ژړندوکې- ژړندا- چونګېدونکې- چنګېدونکې- چنګن- چينګن- چونګاړن- ژړندوکې- ژړندا-

چونګول:(چونګ-ګه-ول)مصدر متعدي- ژړول- په ژړا کول- چينګول- ژړول- چنګول- په ژړا راوستل- په ژړا مجبورول- ژړا ته مجبورول-

چونګول:(چونګ-ګه-ول)مصدر متعدي- په سودا اخستو کښې نقص راوېستل- په سودا کښې چخچې لټول- په عذابول- په سودا کښې چينجنوالې کول-

چونګولې:(چونګ-ګه-وۀ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چونګول-

چونګون:(چونګ-ګه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چونګول-

چونګونکې:(چونګ-ګه-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چونګول-

چونګونکې:(چونګ-ګه-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چونګول-

چونګونګ:(چونګ-ګه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چونګول-

چونګونګ:(چونګ-ګه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چونګول-

چونګونه:(چونګ-ګه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چونګول-

چونګونه:(چونګ-ګه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چونګول-

چونګوۀ:(چونګ-ګه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چونګول-

چونګوۀ:(چونګ-ګه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ چونګول-

چونګه:(چونګ-ګه)اسم- مؤنث- چونګې- جونګه- هغه چونګ څيز چې دوکاندار يې ماشومانو ته د سودا نه پس ورکوي-

چونګې چونګې:(چونګ-ګې-چونګ-ګې)اسم صفت- مرکب- لږ لږ- کم کم- پوټې پوټې- بکسکې بکسکې- ډېر لږ لږ مقدار- لپه لپه-

چونګېدل:(چونګ-ګې-دل)مصدر لازم- ژړېدل- په ژړا کېدل- چينګېدل- ژړېدل- په ژړا کېدل- په ژړا مجبورېدل- ژړا ته مجبورېدل- د ماشوم ژړېدل-

ټ (ټې-رل)، ډ (ډې-ره-ول)، ې (پيا-لې)، ې (تن-دېږ) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

چونګېدل:(چُونګ-ګې-دَل)مصدر لازم- پهٔ سودا کښې چینجنتوب کول-

چونګېدلے:(چُونګ-ګې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چونګېدل ۱-

چونګېدن:(چُونګ-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چونګېدل-

چونګېدن:(چُونګ-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ چونګېدل-

چونګېدنګ:(چُونګ-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چونګېدل-

چونګېدنګ:(چُونګ-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ چونګېدل-

چونګېدونکے:(چُونګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چونګېدل-

چونګېدونکے:(چُونګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چونګېدل-

چونګېدهٔ:(چُونګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چونګېدل-

چونګېدهٔ:(چُونګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ چونګېدل-

چونګی:(چُونګ-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چونګے- چونکی- جونګه-

چونګے:(چُونګ-ګے)اسم صوت-(۱)چونګ- دَ تېز آواز- دَ تېر آواز- دَ ګوز آواز- (۲)دَ مرغهٔ آواز-

چونګے:(چُونګ-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- شوټ- چونړے- یو لاسے- یو لاس لرونکے- پهٔ یو لاس شل- (۱)هغه پهٔ چونګ کښې ورکړه، چې ماشومانو ته ئې دَ سودا نه پس دُوکاندار ورکوی- سودا کښې زیات ورکړے شے- جونګه- چونګه- چونکه- چرکانے- اړه- (۲)ډېر کم څیز- ډېر لږ څیز- (۳)کټه- برے- (۴)واجب- مناسب- حق- (۵)باقی- قرض- پور- (۶)محصول- (۷)دستور- (۸)یو اړخهٔ لپه- (۹)انداز- پیمانه- (۱۰)دَ ټېکس اخستو ځائ- جمع چونګی-

چون وچند:(چُون-و-چَند)اسم مرکب- حساب کتاب کونه- کېفیت معلومونه- (م- فارسی)-

چونه:(چو-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- کمزورې او لنډ قامته بوږې-

چونه:(چُو-نه)اسم- مؤنث- کونے- چینه- اهاک- آهک- هغه کانړے چې پهٔ کوټله کښې ډېر پوخ کړے شی او رنګ ئې سپین شی- دَ دېوالونو سپینولو دَ پاره پکارولے شی- کېلشیم کار بونائېټ-

چونه:(چ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چول-

چونه ګچ:(چُو-نه-ګچ)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)چونه ګس- چونه شوے- سپین شوے- چونه کړے- (۲)چونائی کار- دَ لبو او سپینولو کار-

چونیانړی:(چُون-یا-نړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پاخانه- غسل خانه- چونیانړی-

چونی:(چُو-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)زرهٔ ته نژدې او ګران- زرهٔ ته راتېر- (۲)چینے لوښے- (۳)لال- یاقوت- دَ لال پهٔ شان-

چونی:(چو-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وګورئ چونړی- (۲)دَ ماشوم عضو مخصوص- خوټه-

چونی:(چو-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دوپټه- لوپټه-

چونے:(چو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سونګے- ښائسټوکے- ښکلے- ښکلے څیز- (۲)لیشتنګ- لوښتینګ- (۳)کوچنے- وړوکے-

چوڼ:(چُوڼ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غوریز- غوره- ښهٔ- (۲)چاڼ- انتخاب- خوښونه- ټاکنه- تعینونه-

چوڼ:(چُوڼ)اسم صوت- (۱)دَ مرغی آواز- دَ چنچنې آواز- (۲)نرے او پهٔ مزه آواز- چنهار- نرم غږ- ټیټ آواز- ورو آواز- ورو تلفظ-

چوڼ:(چُوڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مهے- ماهے- کب- (۲)چُوړ- دَ دروازې چېړ- دَ کټ چېړ- دَ کټ چوړ- (۳)دَ تالاب سوره- دَ ویالې وړوکے سورے- دَ ولې وړوکے سورے- (۴)دَ ټوپک غوزه- دَ ټوپک دَ بارودو دَ اور اخستلو ځائ- (۶)انکیټی- منکال- منقل- (۷)دَ قمیص کوټ- دَ قمیص کونجی- دَ قمیص دَ لمنې کونځې-

چوڼا:(چو-ڼا)اسم صوت- وګورئ چوڼهار-

چوڼاسکے:(چو-ڼاس-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ یو زرکوټی بوټی اُودی رنګ لرونکے ګل-

چوڼ چوڼه:(چُوڼ-چو-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چنچڼه-

چوڼکه:(چُو-ڼ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پپکے-

چوڼکے:(چُوڼ-کے)اسم صوت- (۱)چنهار- چوڼهار- دَ مارغانو آواز- دَ مرز اواز- (۲)دَ اُبو بهېدو آواز- پهٔ غوړیو کښې دَ څهٔ څیز دَ سرهٔ کېدو آواز- (کول مصدر)-

چوڼکے:(چوڼ-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- بې حیا- چوڼے- ابغ نبغ- کلک سترګے- لنډور- برند-

چوڼل:(چو-ڼل)مصدر متعدی- پوزه تریوول- پوزه چوڼل- پوزه تروه کول-

چوڼل:(چُو-ڼَل)مصدر متعدی- منتخب کول- انتخاب کول- خوښول- غوره کول- پهٔ ګُته کول- چوڼول-

چوڼل:(چو-ڼل)مصدر متعدی- چاڼول- غلبېلول- چڼول- صافول- صفا کول- (۲)جامو ته کونجی ورکول-

چوڼلے:(چو-ڼهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چوڼل-

چوڼلے:(چو-ڼهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چوڼل-

چوڼ مچونی:(چُوڼ-مه-چُو-نی)اسم صفت- مرکب- ګُنځې ګُنځې- ګنجې ګنجې- وَل وَل- کوټ کوټ-

چوڼنه:(چُو-ڼهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوڼل-

چوڼنه:(چو-ڼهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوڼل-

چوڼول:(چُو-ڼه-وَل)مصدر متعدی- غوره کول- منتخب کول- خوښول- انتخابول- چوڼ کول- ببلول- بیلول-

چوڼول:(چو-ڼه-وَل)مصدر متعدی- مرغی پهٔ آوازونو راوستل- مرغی پهٔ چڼ چڼ راوستل- (۲)حرکت کول- ګرزېدل- (دَ معاشانو)شوړول- چړول-

چوڼولے:(چُو-ڼه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چوڼول-

چوڼولے:(چو-ڼه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چوڼول-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، زبر"(ک-تاب)، پېش"(نو-کا-ره)، جزم"(شکوڼ)، ه"(ز-ړه)، هٔ"(پو-هې-دهٔ)

چوڼون:(چو-نه-ژن)حاصل مصدر- وګورئ چوڼول-

چوڼون:(چو-نه-ژن)حاصل مصدر- وګورئ چوڼول-

چوڼونکے:(چو-نه-ژون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چوڼول-

چوڼونکے:(چو-نه-ژون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چوڼول-

چوڼونګ:(چو-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چوڼول-

چوڼونګ:(چو-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چوڼول-

چوڼونه:(چو-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوڼول-

چوڼونه:(چو-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوڼول-

چوڼوونے:(چو-نه-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- چاڼ- چڼوونے- چاڼوونے- چڼ- دَ چڼولو لوښے-

چوڼه:(چو-نه)اسم- وګورئ ګوڼه-

چوڼهار:(چو-نه-هار)اسمِ صوت- دَ مرغانو چڼهار- دَ مرغانو آوازونه- دَ مرغيو دَ چڼيدو آوازونه- دَ مرغانو چينګار- چوڼا-

چوڼيا:(چوڼ-يا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بنفشه ئی- بنفشه ئی رنګ- دَ بنفشې په شان رنګ- (۲)چوڼے- بلبل-

چوڼياکوکی:(چوڼ-يا-کو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ چنبيلو/چنبيلی ګل- نباتاتی نوم جيسمينم ګرينډيفلورم (JASMINUM GRANDI FORUM)-

چوڼياکی:(چوڼ-يا-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ بنفشې ګل- دَ بنفشې بوټے- بنفشائی رنګ- نباتاتی نوم وائيلا ايس پی پی (VIOLA S P P)-

چوڼيانی:(چوڼ-يا-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)غسل خانه- چارچوبی- پۀ کور کښې دننه غسل خانه- پۀ کور کښې دننه تشناب- دَ کور چرچوبی- (۲)باورچی خانه- دَ پخلی ځائې- مطبخ خانه- پخلنځے-

چوڼېدل:(چو-نې-دل)مصدر لازم- (۱)چڼېدل- بلبل چغېدل- دَ بلبل رېز کول- (۲)چورېدل- شورېدل- (۳)چاڼ کېدل- صفا کېدل- چڼېدل- مېده ځيز دَ ټوکر نه ايستل- (۴)ګونځه کېدل- ګونځې ګونځې کېدل- ګونجې ګونجې کېدل-

چوڼېدلے:(چو-نې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چوڼېدل-

چوڼېدن:(چو-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چوڼېدل-

چوڼېدنګ:(چو-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چوڼېدل-

چوڼېدنه:(چو-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چوڼېدل-

چوڼېدونکے:(چو-نې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چوڼېدل-

چوڼېدۀ:(چو-نې-دۀ)حاصل مصدر از دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ چوڼېدل-

چوڼی:(چو-نی)اسم- واحد- مؤنث- دَ بلبلې هومره دَ خړ رنګ مرغۍ چې لکۍ ئې وړوکې وی-

چوڼی:(چو-نی)اسم- واحد- مؤنث- چاڼی- چڼی- پانه- چينی- دَ اَسپنې پانه چې دَ ږېرو (تيرو) او لرګيو پۀ ماتولو کښې پکارېږی-

چوڼی:(چو-نی)اسم- واحد- مؤنث- چاوڼی- عسکری قشله- دَ فوځيانو دَ اوسېدو ځائې-

چوڼے:(چو-نے)اسم- واحد- مذکر- چڼے- ځړے- طالب- کوچنے طالب- چړی-

چوڼے:(چو-نے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ چونکے-

چوڼے:(چو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ کارېز سُورے-

چوڼے:(چو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چوڼيا-

چوو:(چ-وو)اسم- واحد- مذکر- مغه باد چې دَ واورې ورېدو سره چلېږی- دَ واورې باد- ګردله-

چوول:(چو-ول)مصدر- چاودے پېدا کول- پرق يا ټق چول- څۀ کښې درز پېدا کول-

چوون:(چ-وون)اسم- واحد- مذکر- چاؤد- درز-

چوون:(چو-ون)حاصل مصدر- وګورئ چوول-

چوونکے:(چ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چول-

چوونګړت:(چ-وونګ-ړت)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو يوه لوبه- چيندرو- دمکی-

چووه:(چو-وه)اسم- واحد- مؤنث- دَ چندرو دَ کورنۍ يو خوشبويه بوټے- غازه- چوه- چووے- چويا- نباتاتی نوم ابور ټرس ټس (ABOR TRISTIS)-

چووے:(چو-وے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چود-

چووے:(چو-وے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چووه-

چوه:(چ-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لويه ټوکری- دَ لښتو نه جوړه شوې ټوکری- ټاپ- (۲)کجاوه- (۳)يو قسم خوشبويه بوټے- چويا- (۴)دَ کاڼی يا دَ غر هغه چاؤد چې اَبۀ ترې رابهيږی يا پکښې بوټی زرغون شوی وی- (۵)اجووه- ديچه- جويه- دوپچه- (۶)درز- چاؤد- چاک- چوې-

چوهاره:(چو-ها-ره)اسم- واحد- مؤنث- چواره- چوواره- دَ کجورې مېوه-

چوهاړے:(چو-ها-ړے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ صفايی کار کونکے- چوړے- چواړے- چوزاړے- چوهړے- ناپاک- مردار خور- ناولے- پوواړ- ګنده- بنګی- تور- بدرنګ-

چوهړه:(چوه-ړه)اسم- مؤنث- ګونځه- کوړيته- ګونجه- چوڼ- کوت-

چوهړ ښد:(چو-هړ-ښد)اسم- واحد- مذکر- زوړ او پراخه ښد-

چوهړے:(چوه-ړے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- چوهاړے- کناس- جاروکش- خاکروب-

چوهن:(چو-هن)اسم- مذکر- چودن- چون- چدن- چوهن-

چوهن:(چو-هن)اسم- وګورئ چوهن-

چويا:(چو-يا)اسم- مؤنث- چويه- چووه- خوشبودار تېل- بوئی ناک تېل- بويناک تېل- يو قسم خوشبويه بوټے- چوه- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ چووه-

چويسال:(چوی-سال)اسم- کنديسی- درنه خونه-

چويه:(چو-يه)اسم- مؤنث- وګورئ چويا-

ئ (ځی-رل)، ي (هې-ره-ول)، ی (پيا-لی)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

چوي:(چ-وي)متعلق فعل- اَرومرو- خامخا-

چوی:(چ-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د لوښو ایښودلو ټوکرې- شکرې- د وښو ټوکرې- ټوکرې-

چه:(چه)اسم- د پناه ځای- د پټېدو ځای- پټونے- پناه ګاه- د دفاع ځای- سپورے-

چه:(چه)لاحقه- هغه لاحقه چې د اسم اخر ته ولګی نو اسم تصغیر جوړوی لکه باغ نه باغچه- دوکان نه دوکانچه-

چهایل:(چ-ها-یل)اسم- وګورئ چایل-

چهر:(چهر)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې زیږ ګلونه نیسی-

چهره:(چه-ره)اسم- واحد- مؤنث- څېره- شکل- (م- فارسی)-

چهه:(چ-هه)اسم- مؤنث- شومره- سرنجه- سرونجه- هغه خیرے چې د کوچو له ویلی کولو نه وروستو لهٔ غورو بیل شی-

چهے:(چ-هے)اسم- واحد- مذکر- د اس یو قسم-

چي:(چي)لاحقه- د اسم سره د لاحقې په طور راځی او صفت جوړوی لکه د نداره نه نندارچی یا د ډنبوره نه ډنبورچی-

چیپړ:(چی-پړ)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)زورلے- مبتلے شوے- چې خپل رنګ ئې بدل کړے وی- (۲)غمژن- غم زپلے- مؤنث چیپړه-

چیپک:(چی-پک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ چپک-

چیپی:(چی-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د کجورې کلکه میوه- کلکه کجوره-

چیت:(چیت)اسم صفت- مذکر- (۱)څپړ- چپړ- چپلیت- پلن- (۲)ټیټ- ټیټے- (۳)چیت پیت- د پښو لاندې شوے- چخپیت-

چیت:(چیت)اسم- مذکر- وګورئ چیټ-

چیت پوزے:(چیت-پو-زے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه څوک چې پوزه ئې چیته وی- پیت پوزے- بونجے- خنجے- بوغرق- چپراخ- بد صورت- (۲)بې خوبه-

چیت پیت:(چیت-پیت)اسم صفت- مذکر- مؤنث چیته پیته- چتی شوے- ټکول شوے- وهلے شوے- اپرېت چپرېت- ډېر مبتلے شوے- مات ګوډ- کوږ اوږ- کوږ وږ- چیت چپراق- وتے نتوتے- بیخی چیت-

چیترګنډ:(چی-تر-ګنډ)اسم- واحد- مذکر- چمیار- موچی- چیترې ګنډونکے- هغه څوک چې زړې پنې- څپلې جوړوی-

چیترو:(چیت-رو)اسم- د ماشومانو د لوبو غنډ کانړے- چیتره- رپانګی-

چیتره:(چیت-ره)اسم- مؤنث- رپانکی- ګرد کانړے چې ماشومان پرې لوبې کوی- چیترو- چیتی-

چیتره:(چی-تهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زړه پنه- زوړ پیزار- (۲)سانګې وهلو په لوبه کښې لګ شوے هدف- (۳)بغدادی کونتره-

چیتره:(چیت-ړه)اسم- مؤنث- (۱)ایلن څیز- ایرن- ایری څیز- نرم- (۲)اخواره غوښه- ډنګره غوښه- (۳)زاړهٔ او څیری څیزونه- امباری کالی- پوده او څیری کالی-

چیتوالے:(چیت-وا-لے)اسم- مذکر- چیت پیت والے- چپلیت والے- چخپیت والے- چت پت والے-

چیتول:(چی-ته-ول)مصدر متعدی- چیت پیتول- چپریتول- پلنول- ټکول- چت پتول- چخپیتول- چپلیتول- څخپیتول-

چیتونکے:(چی-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چیتول-

چیتونګ:(چی-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چیتول-

چیتونه:(چی-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چیتول-

چیتوهٔ:(چی-ته-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چیتول-

چیته:(چی-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- ټیټکی- ټیټه- غنډکی- لنډه- جمع چیتې-

چیته:(چی-ته)اسم- واحد- مذکر- لېوهٔ- شرمخ- سائنسی نوم پانتېرا پاردس (PANTHERA PARDUS) (م- هندی چیتا)-

چیتی:(چی-تی)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- چخنې- چنچنې- کنبمنډلے- لوند خوشت- خوشت پوشت-

چیتېدل:(چی-تې-دل)مصدر لازم- (۱)ټکېدل- (۲)چیت پیتېدل- چپراخ کېدل- پلنېدل- اوارېدل- هوارېدل- (۳)ماتېدل- (۴)چخپریتېدل-

چیتېدن:(چی-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چیتېدل-

چیتېدنګ:(چی-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چیتېدل-

چیتېدنه:(چی-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چیتېدل-

چیتېدونکے:(چی-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چیتېدل-

چیتېدهٔ:(چی-تې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ چیتېدل-

چیتی:(چی-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د یوې لوبې نوم- (۲)د ماشومانو د لوبو یوه پلنه تیره- موګی-

چیتے:(چی-تے)اسم- واحد- مذکر- د چیت اسم تصغیر- ټیټکے- اوږدے- مؤنث چیتی-

چیټ:(چیټ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ګلداره کپړه- چیت- څټکه-

چیټاکی:(چی-ټا-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د پاؤ ځلورمه برخه- خورد- خورد-

چیټه:(چی-ټه)اسم- (۱)د چرسو ګولی- (۲)روغه- فیصله- جوړه-

چیټی رسان:(چی-ټی-ر-سان)اسم- واحد- مذکر- هرکاره- پیاده- اردلی- ډاکی- د ډاک او لیکونو وېش کوونکے- جواب کوونکے- استاذے- هغه څوک چې د لیک وړل راوړل کوی- هغه څوک چې چیټی تقسیموی-

چیټی:(چی-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- رسید- رسید خط- د کاغذ لیکلې شوې ټوټه- خط- لیک-

چیچړی:(چچ-ړی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ چیچړ-

چیچړ:(چی-چړ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ګونځې ګونځې- ګرنز- ګرنزے- چوڅره- کړتی- (۲)سرتمبه- سرتمبه- له یوې خبرې نه نهٔ اوړېدونکے-

خُشے سرے- ضدی- (۳)هغه چینجے چې دَ خناورو غلانځې پورې نښتے وی- چیچړی- چیچړی- (۴)د خټکي یو بېړ خوړ وړوکے قسم-

چیچړوٚ:(چیچ-ړوٚ)اسم- مؤنث- (۱)چیندړو- (۲)دَ چیندړو یوه مخصوصه خانه-

چیچړوبن:(چیچ-ړو-بن)اسم- واحد- مذکر- گنده- خوړین- چچړوبن-

چیچړوبی:(چیچ-ړو-بي)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګورئ چیچړوبے-

چیچړوبے:(چیچ-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- غسلخانه- چړچوبی- چیچړوبی- چارچوبی-

چیچړه(چی-چهٔ-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ چیچړ-

چیچړه:(چیچ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ خوارې غوښې پیځانې- خواره غوښه- ړنګره غوښه- پیپړه غوښه- (۲)اُبلن اَو نرم څیز- اُبرن- (۳)دَ ځوځې ځرمن- (۴)چتکه- جمع چیچړې-

چیچړی:(چیچ-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)بوکړی- بکړی- اُبړی- هغه وازده یا غوښه چې ډل ترې وزېستے شی- اړبې اړبې- (۲)وړه سپره- کنه- ریچه- یوه حشره چې دَ مارغانو یا څاروو پهٔ پوستکی پورې نښتې وی-

چیچک:(چی-چک)اسم- (۱)حقې ننکی- کودی- غټې دانې- پور ننکی- (۲)وړې وړې سترګې لرونکے-

چیچکه:(چی-چه-که)اسم- مؤنث- چوچکه- پټکه- چرکوړې- پټه- هغه چرکوټې چې لا پهٔ اګو نهٔ وی راغلې- جمع چیچکې-

چیچکے:(چی-چه-کے)اسم- واحد- مذکر- کوډی- نانځکه- نینځکه- نازکی- لانځکه- دَ لوبو کوډی- جمع چیچکی-

چیچل:(چی-چل)مصدر متعدی- پهٔ غاښونو مېده کول- پهٔ غاښونو خوړل- پهٔ غاښونو پرې کول- غاښ لګول- چک لګول- خله لګول- (۲)ځکونډل- دَ مار ،لړم، مچی، ډمبرې وغېره ټک ورکول-

چیچلے:(چی-چهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ چیچل-

چیچن:(چی-چن)حاصل مصدر- وګورئ چیچل-

چیچنګ:(چی-چنګ)حاصل مصدر- وګورئ چیچل-

چیچنه:(چی-چهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چیچل-

چیچنه ګنه:(چی-چهٔ-نه-ګ-نه)اسم مرکب- مؤنث- خچه ګنه- قچه ګنه- کچنه ګنه-

چیچو غاړه:(چی-چو-غا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ چاچوغاړه-

چیچوړه:(چی-چو-ړه)اسم- یو پړیت شین رنګ لرونکے حشره چې دَ اوښ کېډې پورې نښتے وی-

چیچوک:(چی-چوک)اسم- یو قسم لوبه- یوه بازی- یو ساعت تېرے-

چیچونکے:(چی-چون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چیچل-

چیچه:(چی-چه)اسم- (دَ ماشومانو پهٔ ژبه) غوښه- تیکه-

چیچهٔ:(چی-چهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چیچل-

چیچے:(چی-چے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مرغۍ یا چرګې بچے- چوچے- بچے- بچوړے- (۲)دَ کونډې زوئ- پرکټے- جمع چیچیان-

چیخا:(چی-خا)اسم- (دَ ماشومانو پهٔ ژبه) سپے- کوچ- کوچا-

چیخا:(چی-خا)اسم صوت- دَ سپی دَ شړلو آواز- چخې- کورې-

چیخاړے:(چی-خا-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ څهٔ څیز مرداره ټکړه-

چیختان:(چیخ-تان)اسم صفت- وګورئ چختاړ-

چیخړن:(چیخ-ړن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چخن- چوخن- هغه څوک چې سترګې ئې چخې کوی- (۲)ګنده- ناپاک- لړلے-

چیخړی:(چیخ-ړی)اسم صفت- وګورئ چخنی-

چیخړی:(چیخ-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- دَ سترګو خیرے- چخه-

چیخل:(چی-خل)مصدر متعدی- چخل- منډل- ننه ایستل- چوخول- چوخل-

چیخن:(چی-خن)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې سترګې ئې چخې کوی- چخن- چخړن- چیخړن-

چیخنول:(چیخ-نه-ول)مصدر متعدی- راکښل-

چیخنون:(چیخ-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ چیخنول-

چیخنونکے:(چیخ-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چیخنول-

چیخنونګ:(چیخ-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ چیخنول-

چیخنونه:(چیخ-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چیخنول-

چیخنوهٔ:(چیخ-نه-وه)حاصل مصدر- وګورئ چیخنول-

چیخنېدل:(چیخ-نې-دل)مصدر لازم- راکښلے کېدل- راکښل کېدل- (۲)سترګې په چخو ابته کېدل- په چخو لړلے کېدل-

چیخنېدن:(چیخ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ چیخنېدل-

چیخنېدنګ:(چیخ-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ چیخنېدل-

چیخنېدنه:(چیخ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ چیخنېدل-

چیخنېدونکے:(چیخ-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ چیخنېدل-

چیخنېدهٔ:(چیخ-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ چیخنېدل-

چیخوړے:(چی-خو-ړے)اسم- بیکاره- زوړ- دَ کار نه وتے-

چیخې:(چی-خې)اسم صوت- (۱)دَ سپی دَ شړلو آواز- چخې- کورې- (۲)اسم- جمع- مؤنث- دَ سترګو ګند- چخې- چوخنی-

چیخے:(چی-خے)اسم- واحد- مذکر- هغه چینجے چې دَ ماشوم ګنه کښې کیری- کیخے-

چیر:(چیر)اسم- واحد- مذکر- تېرهٔ مخے کانړے- ځیرنکے- تیروسکے- چشنکے-

چیرړه:(چیر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- چیره- لته- زړه لته- خوندړه- څېړه- رنجه- ریښکی- چیرړوٚ- چیرانګه- خرځوړے- پړانګه- برانګه- دَ زړوکی توټه- ریښه- زړه ټکړه- زړه ریخه- زړه رینجه- آشو- چرړه- جمع چیرړې-

چیرړهٔ:(چیر-ړهٔ)اسم- مؤنث- وګورئ چیرړه-

چیرړې میرړې:(چیر-ړې-میر-ړې)اسم مرکب- (۱)رنجې منجې- ریښې میښې- رنجې رتې- (۲)زړې چامې- سولېدلې جامې- ډېرې اغستے شوې جامې-

ی (ځې-رل) ې (مې-ره-ول) ئ (پیا-لې) ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ځوړ:(ځوړ)صفت- (۱)ښکته- لاندې- (۲)خوړند- (۳)پړمخ- اپوته- (۴)کوږ وږ- (۵)وچ کلک- (۶)منډلے- (۷)باسی پړوی- (۸)ملامت- پړ-

ځوړ:(ځ-وړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خېمې یا کېږدۍ مخې ته زوړنده کپړه- (۲)زوړ ټغر چې دَ کټې پهٔ توګه پهٔ خرو او قچرو اچولے کیږی-

ځوړغوړ:(ځوړ-غوړ)صفت- مرکب- ملامته- پړ- خړ- ټیټ سترګے- شرمنده- خجل-

ځوړ غوټے:(ځوړ-غو-ټے)اسمِ صفت- هغه غوټے چې ښکرونه يُ ځټ ته کاږهٔ شوی وی-

ځوړمنے:(ځوړ-مهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ اوړی او ژمی تر مینځه فصل یا موسم- پسرلے- ځړمنے-

ځوړنګ:(ځو-ړنګ)اسم- واحد- مذکر- دَ وجود یوه برخه-

ځوړنګه:(ځو-ړنګ-ګه)اسم- مؤنث- (۱)نوے راټوکېدلے بوټے- (۲)ماشوم- وړوکے ملک یا جینی-

ځوړوالے:(ځوړ-وا-لے)اسم- (۱)پړوالے خړوالے- (۲)لاندې والے- ښکته والے-

ځوړول:(ځو-ړَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)منډل- ښکته کول- ننه وېستل- ننه ایستل- ننه باسل-

ځوړولے:(ځو-ړَ-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ځوړول-

ځوړون:(ځو-ړَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوړول-

ځوړونکے:(ځو-ړَ-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځوړوُل-

ځوړونګ:(ځو-ړَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوړوُل-

ځوړونه:(ځو-ړَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوړوُل-

ځوړونه:(ځو-ړو-نه)اسم- جمع- مذکر- دَ کېږدې پردې-

ځوړه:(ځُو-ړه)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خېړنګې اوُږده لکۍ لرونکې مرغۍ- ځوړے-

ځوړین:(ځو-ړینَ)اسم- واحد- مذکر- دَ ځرمنې زړه ټوټه چې کېږې پرې وینځلے کیږی-

ځوړې سترګې:(ځو-ړې-سْتَر-ګې)صفت- کوزې سترګې- ښکته سترګې- ټیټې سترګې- دَ شرم لهٔ کبله ټیټې سترګې-

ځوړېدل:(ځو-ړې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)ړوبېدل- ښکته کېدل- (۲)کوز کېدل- چوړېدل-

ځوړېدلے:(ځو-ړې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع ځوړېدلی- مؤنث ځوړېدلې- وګورئ ځوړېدل-

ځوړېدن:(ځو-ړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوړېدل-

ځوړېدنګ:(ځو-ړې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوړېدل-

ځوړېدنه:(ځو-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوړېدل-

ځوړېدونکے:(ځو-ړې-دوُن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ځوړېدونکی- مؤنث ځوړېدونکې- وګورئ ځوړېدل-

ځوړېدهٔ:(ځو-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ځوړېدل-

ځوړے:(ځُو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ځوړه-

ځوړے:(ځو-ړے)اسمِ صفت- وګورئ ځوړ غوټے-

ځوز:(ځوز)اسم- واحد- مذکر- جوهر- رس- عرق- زوښه- ځوښه-

ځوز:(ځوز)اسم- واحد- مذکر- ځوز- ځوخ- خوز- یو ازغن بوټے- نباتاتی نوم هېډېسېرم الهجی (HEDYSARUM ALLHAGI)-

ځوزخانه:(ځوز-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ځوزانو نه جوړه کوټه چې پهٔ اوړی کښې استعمالولے شی-

ځوزے:(ځُو-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لوخې پهٔ شان یو بوټے چې پهٔ جوماتونو کښې غوړولے کیږی- (۲)دَ چرګې بچے-

ځوس:(ځُوسَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بویوُنه- بوئ راکښنه- بوئ وهنه- (۲)دَ څهٔ څیز پته لګونه-

ځوسلن:(ځُوس-لَن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ ځوځلن-

ځوسن:(ځُو-سَن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)بوئ راکښونکے- بوئ معلومونکے- (۲)تلاش کونکے- پړوړ وهونکے- (۳)وږسترګے- (۴)بغېر دعوته مېلمه-

ځوسېدل:(ځو-سې-دَل)مصدرِ لازم- توسېدل- بوئ راکښل- بوئېدل- پهٔ خوراک پسې ګرځېدل- (افغانستان)-

ځوسېدلے:(ځُو-سې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع ځُوسېدلی- مؤنث ځُوسېدلې- وګورئ ځوسېدل-

ځوسېدن:(ځُو-سې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوسېدل-

ځوسېدنګ:(ځُو-سې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوسېدل-

ځوسېدونکے:(ځُو-سې-دوُن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ځوسېدونکی- مؤنث ځوسېدونکې- وګورئ ځوسېدل

ځوسېدنه:(ځُو-سې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځوسېدل-

ځوسېدهٔ:(ځُو-سې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ځوسېدل-

ځوسیس:(ځُو-سیس)اسمِ صفت- واحد- مذکر- جاسوس- مخبر- څارونکے- جاسیس- (افغانستان)-

ځوشه:(ځُو-شه)اسمِ صفت- واحد- مذکر- سوچه-

ځوښتے:(ځُوښ-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه لرګے چې دَ تنستې پهٔ سمولو او اُبدلو کښې ترې کار اخستے شی- (۲)وښکے- (۳)دَ کوزې ځوښکوړے- ځوښکے-

ځوښړے:(ځو-ښ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ کوزې یا چائېنک مښوکه- ځخسوړے- ځخکوړے- جمع ځوښړی-

ځوښکوړے:(ځوښ-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ کوزې ، لوټې یا چایُ جوش مښوکه- ځوځنګ-

زبر "(ځ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، زېر "(کِ-تاب)، پېښ "(نُو-کا-ره)، جزم "(شکوڼ)، "ۀ"(ز-ړه)، "ۀ"(یو-بې-دهٔ)

څوښکوړے:(څوښ-کو-ړے)اسم- واحد-مذکر- وګورئ څوښکورے-
څوښکه:(څوښ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ څوښکورے-
څوښکه:(څو-ښۀ-که)اسم تصغیر- د سوخی اسم تصغیر-
څوښکی:(څوښ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ څوښکورے-
څوښکے(څوښ-کے)اسم- واحد- مذکر- چښکه- څوښکورے-
څوښه:(څو-ښه)اسم- واحد- مؤنث- څرخه- هغه آله چې وړی پرې تار کیږي-
څوښه:(څو-ښه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ څوخي-
څوښی:(څو-ښی)اسم- واحد/جمع- مؤنث چوسنی- چوسنی-
څوښے:(څو-ښے)اسم- واحد- مذکر- (۱) چوستے- چوښکه- څوښکورے- (۲)چولکے- د وړو هلکانو عضو تناسل- چونی-
څوک:(څوک)استفهامی ضمیر- کوم- کوم یو-
څوکرېیل:(څوک-رې-یل)مصدر- واړۀ واړۀ کول- مېده کول- ټوټې ټوټې کول- کوفته کول- قېمه کول-
څوکرېیلے:(څوک-رې-یۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ څوکرېیل-
څوکرېین:(څوک-رې-ین)حاصل مصدر- وګورئ څوکرېیل-
څوکرېینګ:(څوک-رې-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ څوکرېیل-
څوکرېینه:(څوک-رې-یۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ څوکرېیل-
څوکرېیونکے:(څوک-رې-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ څوکرېیل-
څوکرے:(څوک-رے)اسم- واحد- مذکر- نلے- د کونډی نه تر ګیټی پورې د پښې برخه- څوګرے-
څوکړ:(څو-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- څکړ- هغه سړے چې ږیره ئې رنګ کړې وی- چوکړ- کوسه- سکړ-
څوکړه:(څوک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څوکه- څوکښې- څوکړې- سر- تېغے- وچت سر- (۲)چوټکه- څونډے- ترقره- جغه- څنډے-
څوکړې:(څو-که-ړې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ څوکړه-
څوکښل:(څوک-ښل)مصدر- راکښل- راکشل- راکاږل-
څوکښلے:(څوک-ښۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ څوکښل-
څوکښن:(څوک-ښن)حاصل مصدر- وګورئ څوکښل-
څوکښنګ:(څوک-ښنګ)حاصل مصدر- وګورئ څوکښل-
څوکښونکے:(څوک-ښون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ څوکښل-
څوکښنه:(څوک-ښۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ څوکښل-
څوکل:(څو-کل)مصدر- ټکول- مېده کول- واړۀ واړۀ کول- دلول- قیمه کول- کوفته کول-
څو کلن:(څو-ک-لن)اسم- د څو کالو- د څۀ مودې-
څوکلے:(څو-کۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ څوکل-
څوکن:(څو-کن)حاصل مصدر- وګورئ څوکل-
څوکنګ:(څو-کنګ)حاصل مصدر- وګورئ څوکل-
څوکنه:(څو-کۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ څوکل-

څوک نه څوک:(څوک-نه-څوک)صفت/متعلق فعل- یو نه یو- کوم یو- یو څوک- یو کس نیم-
څوکونکے:(څو-کون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ څوکل-
څوکه:(څو-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱) څوکښې- نوکه- د نېزې او غشی تېرۀ سر- د چاقو د تورې او شل وتے او نرے تېرۀ سر- (۲)د مرغی مښوکه- (۳)د ونې پاس آخری سر څوکړې- جمع څوکې-
څوکه:(څو-که)اسم صفت- واحد- مذکر- آسان- د مشکل ضد-
څوکه:(څو-که)اسم- مؤنث- څارنه- د نظر لاندې ساتنه-
څوکیدار:(څو-کی-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- چوکیدار- پېره دار- پهره دار- څوکې کونکے- جمع څوکیداران- مؤنث څوکیداره- (م- هندی)-
څوکیداری:(څو-کی-دا-ری)اسم- مؤنث- چوکیداری- پېره داری- ساتنه- حفاظت- څارنه- د څوکیدار پېشه-
څوکیوان:(څو-کی-وان)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ څوکیدار-
څوکۍ:(څو-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وړه کرسی- چوکی- (۲)پېره- تانه- د پولیس هغه ځائې چې د تانې نه لرې وی- (۳)مورچه- سنګر- مورچل- (۴)برج د پناهی دېوال- (۵)یو ډول بوټے- (۶)د څوکیدار د زدرېدو ځائې- (۷)کلچه- چپاتے-
څوکے:(څو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ماشومانو یو قسم ټوپی- خورجین- (۲)یو بوټے چې پاڼې ئې غنډې غنډې وی او خوند ئې تریخ وی- (۳)څوکیدار-
څوګرے:(څوګ-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ څوکرے-
څوګل:(څو-ګل)اسم- واحد/جمع- مذکر- د دالو یاداسې نورو څیزونو پوستکی چې د پخېدو پۀ وخت د دیچکی سر ته راخیژی-
څوګیر:(څو-ګیر)اسم صفت- د ښکار پۀ طمع ناست ښکاری- انتظار کونکے- پۀ ځاؤ کښې ناست-
څول:(څول)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټوټې ټوټې- مېده مېده- اوړۀ اوړۀ- (۲)چاؤدلے- درز درز-
څولاغ:(څو-لاغ)اسم- واحد- مذکر- سراغ- درک- د موندو ځائې- پته- نښه پته- (افغانستان)-
څولانه:(څو-لا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ زولنه-
څولکے:(څول-کے)اسم تصغیر- څولے- څورلے- سکنه- سکڼه- د څولی اسم تصغیر- شخرلے- د ترکاڼانو یو اززار- جمع څولکی-
څولند:(څو-لند)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وړ سترګې- حریص- وږ ارواح- (۲)چوسن- چوسکن- څوسن- توسن-
څوله:(څو-له)اسم- واحد- مؤنث- کند- کیند- د ملنګانو اوږد قمیص چې د مختلفو ټوټو نه جوړ شوے وی-
څوله:(څو-له)اسم- واحد- مؤنث- بار- پنډ- خله خوله-
څولی:(څو-لی)اسم- جمع- مذکر- بنګړی- څیلی- چلی- چوړی-

ئ (څې-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ځوليار :(ځول-يار)اسم- واحد- مذکر- هغه تنګه لار چې په غر کښې د پيادو خلقو د پاره جوړه شوې وی-

ځولې:(ځو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ځولے-

ځولے:(ځو-لے)اسم- واحد- مذکر- ځولی- سکنه-

ځومبره:(ځومب-ره)حرف استفهام- وګورئ ځومره-

ځومره:(ځوم-ره)حرف استفهام- د چا نه د څۀ څيز د مقدار يا ناپ معلومولو په وخت د ذکر کړے شوی مقدار يا ناپ پښتنه کونه- ځونه- ځومه- ځامره- ځومبره-

ځومکے:(ځوم-کے)اسم- واحد- مذکر- ځوکے- ځکے- خورجين-

ځومنه:(ځوم-نه)حرف استفهام- وګورئ ځومره-

ځونبره:(ځومب-ره)حرف استفهام- وګورئ ځومره-

ځونټې:(ځون-ټې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کاشوغه- قاشوغه- وړه څمڅی-

ځونټے:(ځون-ټے)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- ټنډے- هغه ځوک چې لاس ئې پرېکړے شوے وی- بونډلاسے- چونډے لاسے- مؤنث ځونټې-

ځونڅې:(ځون-څې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- څمڅی- کاشوغه- قاشوغه-

ځوند:(ځ-وند)اسم صفت- واحد- مذکر- لالهانده- بې آرامه- سرګردانه- ناقلاره- (۲)اور په لګی (استعارتاً ونېلے کيږی)-

ځوندي:(ځون-دي)حرف استفهام- وګورئ ځومره-

ځونډک:(ځون-ډک)اسم- واحد- مذکر- زومبک- زومبکے- خونډے- ځنډے-

ځونډکرکے:(ځون-ډ-کر-کے)اسم- د ځونډی اسم تصغير-

ځونډے:(ځون-ډے)اسم- واحد- مذکر- (۱)خونډے- (۲)سټوکے- د سر د مخې وېښته-

ځونسو:(ځون-سو)اسم عدد- څلور سوه- (۴۰۰)-

ځونګرے:(ځونګ-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه پتيره ډوډی چې د ماشومانو د ناروغۍ په وخت د صدقې يا خېرات په ډول وېشلے کيږی-

ځونګه:(ځون-ګه)حرف استفهام- ځومره- ځامره- ځومبره-

ځونګه:(ځونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ځانګه-

ځونګې:(ځونګ-ګی)اسم- جمع- مؤنث- زلفې- ځنې- بنوڅی-

ځونه:(ځو-نه)حرف استفهام- وګورئ ځومره-

ځونه ځاره:(ځو-نه-ځا-ره)اسم- ټال مټول کونه- خبره ځنګونه- خبره ځنډونه-

ځوني:(ځو-ني)حرف استفهام- وګورئ ځومره-

ځونی:(ځو-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)چمبړ- چاپه داره خامتا- هغه ټيکرے چې په سور ګل کښې رنګ شوے وی- (۲)هغه بيزه چې غوږونه ئې واړۀ وی- بوچه وزه- بوجه بزه-

ځونے:(ځو-نے)اسم- واحد- مذکر- د ګنی پوک- پوړ- د ګنی پوستکے-

ځونے:(ځو-نے)اسم- واحد- مذکر- د ګنو نه د رس ايستلو آله- کانړی-

ځوڼ:(ځوڼ)اسم صوت- د پوزې د صفا کولو آواز-

ځوڼک:(ځو-ڼک)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځنې- ګېسو- (۲)د وړو ملکانو د تندی وېښته چې د مينې په دود ساتلے شوی وی- د ځنې اسم تصغير-

ځوڼکی:(ځو-ڼه-کی)اسم- جمع- مؤنث- ځوڼک- ځڼه-

ځوڼکه:(ځو-ڼه-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ځڼه- ځڼکه- د ځنې اسم تصغير- (۲)خول- تاج- چارخولک-

ځوڼول:(ځو-ڼه- ول)مصدر متعدی- (۱)سوڼول- پوزه پاکول- (۲)بوېول- سونګول- پوزې له وړل-

ځوڼون:(ځو-ڼه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ځوڼول-

ځوڼونکے:(ځو-ڼه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځوڼول-

ځوڼونګ:(ځو-ڼه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ځوڼول-

ځوڼونه:(ځو-ڼه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ځوڼول-

ځوڼه:(ځو-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ځڼه-

ځوڼی:(ځو-ڼی)اسم- مؤنث- ځڼه- ځوڼکه- کوڅی-

ځوڼيور:(ځو-ڼی-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه ځوک چې لوې لوې وېښتۀ يا ځنې ئې پرېښودې وی- ځڼور-

ځوڼيور ناوې:(ځو-ڼی-ور-نا-وې)اسم صفت- مؤنث- (۱)د ځڼور سړی ناوې- (۲)د لېور د ښځې لقب-

ځوول:(ځۀ-وه-ول)مصدر متعدی- خوروول- دردول- کړول-

ځوول:(څه-وه-ول)مصدر متعدی- اراده کول- په زړۀ کول- په زړۀ کښې څۀ خبره نيول-

ځوولے:(ځۀ-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ځوول ۱-

ځووم:(ځو-وم)صفت- ځومم- ځويم- عددی صفت-

ځوون:(ځۀ-وه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ځوول ۱-

ځوون:(څه-وه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ځوول ۲-

ځوونکے:(ځۀ-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځوول ۱-

ځوونکے:(څه-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځوول ۲-

ځوونګ:(ځۀ-وه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ځوول ۱،

ځوونګ:(څه-وه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ځوول ۲-

ځوونه:(ځۀ-وه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ځوول ۱-

ځوونه:(څه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ځوول ۲-

ځووه:(ځو-وه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم خوشبودار بوټے چې د کاړو د بوټی په شان وی-

ځوه:(ځوه)اسم- واحد- مؤنث- د آس ، خر يا قچر سوم-

ځومان:(ځو-مان)اسم- چومان-

ځومټ:(ځو-مټ)صفت- واحد- مذکر- فضول- بې ښې- عبث-

ځومره:(ځوه-ره)اسم- واحد- مؤنث- د نس د نامۀ د پاسه هغه غوښه چې ځيرې وی- فتق- چوره-

ځومم:(ځو-مم)صفت- وګورئ ځووم-

ځومنده:(ځو-من-ده)حرف استفهام- وګورئ ځومره-

زبر (خ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ۀ (ز-ړه)، ۀ (پو-ښی-دۀ)

ځومېدل:(ځو-مې-دل)مصدر - وګورئ ځوېدل-

ځومېدلے:(ځو-مې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع ځومېدلی- مؤنث ځومېدلې- وګورئ ځومېدل-

ځومېدن:(ځو-مې-دن)حاصلِ مصدر - وګورئ ځومېدل-

ځومېدنګ:(ځو-مې-دنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ ځومېدل-

ځومېدنه:(ځو-مې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ ځومېدل-

ځومېدونکے:(ځو-مې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ځومېدونکی- مؤنث ځومېدونکې- وګورئ ځومېدل-

ځومېدنه:(ځو-مې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ ځومېدل-

ځومېدۀ:(ځو-مې-دۀ)حاصلِ مصدر او ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ځومېدل-

ځوېدل:(ځوې-دل)مصدرِ لازم- خوږېدل- دړدېدل- ځړېکې کېدل- نرے دړد کېدل-

ځوېدلے:(ځوې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع ځوېدلی- مؤنث ځوېدلې- وګورئ ځوېدل-

ځوېدن:(ځوې-دن)حاصلِ مصدر - وګورئ ځوېدل-

ځوېدنګ:(ځوې-دنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ ځوېدل-

ځوېدنه:(ځوې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ ځوېدل-

ځوېدونکے:(ځوې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ځوېدونکی- مؤنث ځوېدونکې- وګورئ ځوېدل-

ځوېدونې:(ځ-وې-دو-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خوږې ګولی-

ځوېدۀ:(ځوې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ځوېدل-

ځوېده:(ځوې-ده)اسم- واحد- مؤنث- غار-

ځوېره:(ځوې-ره)اسم- مؤنث- وګورئ ځورے-

ځوېرې:(ځوې-رې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ځورې- خوراکه- توښه- ځورې- څۀ خوراکې ځیزونه-

ځوېم:(ځوېم)صفت- ځویم- کوم یو نمبر- ځوم- عددی صفت-

ځوېمه:(ځوې-مه)صفت- مؤنث- ځومه- ځویمه- ځوممه-

ځوے:(ځ-وے)اسم- واحد- مذکر- دَ پناه ځایُ- پناه ګاه- پۀ ځاؤ کښې دَ ناستې ځایُ- جمع ځوی-

ځوے:(ځوے)اسم- خوږ- دړد- ځړیکه-

څه:(څه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ځاه-

څۀ:(څۀ)حرفِ استفهام- (۱)دَ تعجب او دَ پښتنې دَ فقرې پۀ سر کښې وئېلے کیږی- (۲)او- نه- څخه- (۲)صفت- لږ بعضې- څنې-

څۀ ته:(څۀ-ته)کلمۀ استفهام- دَ څۀ دَ پاره- څنګه- ولې- څۀ له-

څۀ ترا:(څۀ-ته-ره)کلمۀ استفهام- څۀ رنګ- څۀ خېل- څۀ رنګې-

څۀ خېل:(څۀ-خېل)کلمۀ استفهام- څۀ رنګ- څۀ قسم-

څۀ ړول:(څۀ-ړ-ول)کلمۀ استفهام- څۀ قسم- څنګه- څۀ رنګه- څۀ شان-

څۀ رنګه:(څۀ-رنګ-ګه)کلمۀ استفهام- وګورئ څۀ ړول-

څهره:(څه-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څېره- بشره- شکله- موشاده- نمونه- مخ- ګونه-

څۀ شان:(څۀ-شان)کلمۀ استفهام- څۀ ړول- له څۀ قسمه- په څۀ شان- څنګه- څۀ رنګه-

څۀ قدر:(څۀ-ق-در)صفت- لکوټې- لږ کوټې- لږ شان- ذره شان- معمولي- څۀ نه څۀ-

څۀ له:(څۀ-له)کلمۀ استفهام- وګورئ څۀ ته-

څۀ نا څۀ:(څۀ-نا-څۀ)صفت- څۀ نا څۀ- لږ ډېر- کم از کم- څۀ قدرې-

ځې:(ځې)حرف (ځ) دَ پښتو دَ "اب" دَ پټې لسم حرف- صصیح تلفظ یُ ځیم دے-

ځیپیاکه:(ځیپ-یا-که)اسم- واحد- مؤنث- هغه مالګه چې پۀ مصنوعی طریقه دَ مالګې دَ خګ نه جوړه شوې وی- دَ خګنده مالګه-

ځیخ:(ځیخ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)کلک منړلے شوے- اغېړ پۀ زورکېمنړلے- موخه- (۲)نېغ- سیخ- مؤنث ځیخه-

ځیخل:(ځی-خل)مصدرِ متعدی- (۱)سیخل- پۀ زور زرر منړل- (۲)موخه کول- (۳)اغېړول- (۴)نېغول- پۀ لاره را ا ړول-

ځیخلے:(ځی-خۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ځیخل-

ځیخن:(ځی-خن)حاصلِ مصدر - وګورئ ځیخل-

ځیخنګ:(ځی-خنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ ځیخل-

ځیخنه:(ځی-خۀ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ ځیخل-

ځیخونکے:(ځی-خون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځیخل-

ځیخه:(ځی-خه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- وګورئ ځیخ-

ځیرانګه:(ځی-رانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پړانګه-

ځیرخولے:(ځیر-خو-لے)اسم- واحد- مذکر- باټینګې- تور بانجان- جمع ځېرخولی-

ځیر سترګې:(ځیر-ستر-ګې)اسمِ صفت- بې حیا- سپین سترګې- بې شرمه- بداخلاقه-

ځیرکه:(ځی-ر-که)اسم- واحد- مؤنث- ځوکړی- خوکه- ځوکنړی- (۲)تاج- (دَ سر)- (۳)قرقره- هر هغه شے چې پۀ سر باندې جوړ وی- چارخولګ- (۴)دَ غرۀ ځوکه- جمع ځیرکې-

ځیرل:(ځی-رل)مصدرِ متعدی- شلوُل- بڅه کڅل- پۀ مینځ دوه کول- اره کول-

ځیرلے:(ځی-رۀ-لے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هغه ځاروے چې مست شوے یا وار خطا شوے وی او قابو کول یُ ګران وی-

ځیرلے:(ځی-رۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ځیرل-

ځیرن:(ځی-رن)حاصلِ مصدر - وګورئ ځیرل-

ځیرنګ:(ځی-رنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ ځیرل-

ی" (ځی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ئ"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ځیرنکے:(ځی-رنک-کے)اسم- واحد- مذکر- تېرهٔ کاڼے- چیر- تېروسکے-
ځیرنه:(ځی-رهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیرل-
ځیرول:(ځی-ر-ول)مصدر متعدی- (۱)شلول- بڅول- غوڅول- پرېکول- ځیرل- (۲)لرې سوړې راوېستل-
ځیرولے:(ځی-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ځیرولی- مؤنث ځیرولې- وګورئ ځیرول-
ځیرون:(ځی-ر-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیرول-
ځیرونکے:(ځی-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځیرل-
ځیرونکے:(ځی-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځیرول-
ځیرونګ:(ځی-ر-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیرول-
ځیرونه:(ځی-ر-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیرول-
ځیره:(ځی-ره)اسم- واحد- مؤنث- اره- د لرګیو رېبلو آله-
ځیره:(ځی-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څرېکه- دَ نمر څرېکه- (۲)زړه کېږه- (۳)وروکے پټے-
ځیرې:(ځی-رې)صفت- شلېدلے- دوه ځایه- بڅه- بوڅه- شکېدلے- (۲)برڅېره-
ځیری پیری:(ځی-رې-پی-ری)صفت- شلېدلے- بڅه- ځیرې شوے- چیرې پیرې- چیرې پانګ- ځیرې ویرې-
ځیرېدل:(ځی-رې-دل)مصدر لازم- شلېدل- بڅه کېدل- اره کېدل- پرې کېدل-
ځیرېدلے:(ځی-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ځیرېدلی- مؤنث ځیرېدلې- وګورئ ځیرېدل-
ځیرېدن:(ځی-رې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیرېدل-
ځیرېدنګ:(ځی-رې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیرېدل-
ځیرېدونکے:(ځی-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ځیرېدونکی- مؤنث ځیرېدونکې- وګورئ ځیرېدل-
ځیرېدنه:(ځی-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیرېدل-
ځیرېدهٔ:(ځی-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ځیرېدل-
ځیرې ویرې:(ځی-رې-وی-رې)صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- شلېدلے- بڅه- ځیرې پیرې-
ځیرے:(ځی-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه د قبرېوله چې سرے پکښې ښخولے شی- قبرېوله- ړوره- جمع ځیری-
ځیرے:(ځی-رے)اسم- مذکر- دَ کاغذ ټوټه- رقعه- جمع ځیری-
ځیز:(ځیز)اسم- واحد- مذکر- شے- مال متاع- جمع ځیزونه- (م- هندی چیز)-
ځیزنی:(ځیز-نی)اسم- واحد- مؤنث- هغه پلنه پټی یا مزے چې ماشوم پرې پهٔ وړنی (اوړنی) کښې تړلے شی- سیزنی-
ځیز وس:(ځیز-وس)اسم- جمع- مذکر- ځیز وست- توکی- ټوکی- (۲)ځیزونه- شیان-

ځیز وست:(ځیز-وست)اسم- وګورئ ځیز وس-
ځیکل:(ځی-کل)مصدر- لړمون پرېکول- لوړمانښ یا بل څهٔ ځیز مېده کول-
ځیکلے:(ځی-کهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ځیکل-
ځیکن:(ځی-کن)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیکل-
ځیکونکے:(ځی-کون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ځیکل-
ځیکنه:(ځی-کهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ځیکل-
ځیکه:(ځی-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ پټکی شمله- شمله- (افغانستان)-
ځیکه:(ځی-که)اسم- واحد- مؤنث- ځوکه- لکی-
ځیګ:(ځیګ)اسم- مذکر- دَ بزو سانډ- دَ چیلو دَ نسل کشی دَ پاره ساتلے شوے چیلے-
ځیل:(ځیل)اسم- واحد- مذکر- مقنع- دَ مخ پټولو څادر-
ځیلمځی:(ځی-لم-ځی)اسم- واحد- مذکر- لاس وینځونکے- چیلمچی- لاس وینځونے- دَ لاس وینځلو خاص لوښے-
ځیله:(ځی-له)اسم- مؤنث- (۱)ځله- چله- هغه یخې ورځې چې پکښې کنګل پرېوځی- (۲)چارخولګ- ترتره- جمع ځیلې-
ځیلی:(ځی-لی)اسم- واحد- مؤنث- وس- طاقت- توان- قدرت-
ځینځښه:(ځین-ځهٔ-ښه)اسم- واحد- مؤنث- چیندخه- چنګښه- ځینګښ- (افغانستان)-
ځینځکې:(ځین-ځ-کې)اسم- جمع- مؤنث- ځوانکې- سینځکې- هغه وړې دانې چې دَ ځوانی پهٔ وخت پهٔ مخ راخیژی-
ځینزرے:(ځین-ز-رے)اسم- واحد- مذکر- تنزرے- تنځرے- دَ سائنسی نوم دَ پاره وګورئ تنزرے-
ځینګښ:(ځینګ-ګښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ځینځښه-
ځینګکه:(ځینګ-ګ-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم وړه مرغی- ځینګی-
ځینګی:(ځینګ-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ځینګکه-
ځینور:(ځی-نه-ور)اسم- واحد- مذکر- ځنیور- غبرګیز- جوزا- غبرګون- دَ هجری شمسی کال دَ درېمې میاشت نوم- (افغانستان)-
ځینی:(ځی-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سور څادر- بنارسی-
ځینی:(ځی-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سنی- رسی- سوتلی- ړوری- تاؤ کړې سنی- تاو کړې رسی-
ځې:(ځې)حرف- ځ- دَ پښتو دَ "اب" دَ پټی لسم حرف- صصیح تلفظ ېُ ځیم دے-
ځېته:(ځې-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ تورې پڅ اړخ- دَ تورې شا-
ځېټکی:(ځې-ټه-کی) اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ جوارو مغز- شتی-
ځېټی:(ځې-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ستی- ځټی- دَ تبر یا سسکورې پڅ اړخ-
ځېر:(ځېر)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)ځېره- وختی سحر- وړانګه- پلوشه- سباوون-

څېر :(څېر )حرف تشبیه- مانند- مثل- نظیر- ډول- غوندې- شان- رنګ-

څېرکۍ:(څېر-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړوکے پټے- لږه زمکه- د پټي لږ مقدار-

څېرله:(څېر-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- پټه بزه- خوانه بزه- خوانه چېلۍ- مغه خوانه چېلۍ چې لا مال شوې نۀ وی-

څېرلے:(څېر-لے)اسم- واحد- مذکر- چېلے- چېرلے- جمع څېرلی-

څېرمه:(څېر-مه)صفت/متعلقِ فعل- سېلمه- څېلمه- (۱)څنګ ته- خوا ته- اړخ ته- نژدې- نږدې- مخامخ- پېوست- (۲)ټول- ټېخي- لۀ یوۀ سره- تمام-

څېرمه:(څېر-مه)اسم- واحد- مؤنث- حاشیه- ژی- څنډه- مورګه- غاړه- ډډه-

څېرمې:(څېر-مې)متعلقِ فعل- وګورئ څېرمه ۱-

څېره:(څې-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بڼه- موشاده- بشره- د مخ جوړ- رغونه- بت- (۲)پګړۍ- طره- (۲)چرته- (م- چهره هندی)

څېره کښ:(څې-ره-کښ)اسم صفت- څېره ګر- فوټو ګرافر- تصویر ایستونکے-

څېره کښی:(څې-ره-کۀ-ښې)اسم- مؤنث- څېره ګری- تصویر ایستنه- فوټو ګرافی-

څېره ګر :(څې-ره-ګر)اسم صفت- وګورئ څېره کښ-

څېره ګری:(څې-ره-ګۀ-ری)اسم- مؤنث- وګورئ څېره کښی-

څېره مخے:(څې-ره-م-خے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بت- پېکر- شکل- (۲)دم ختلے-

څېره یار :(څې-ره-یار)اسم صفت- واحد- مذکر- مصور- څېره ګر-

څېری:(څې-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)لوې کاربز- (۲)ازغکے- څری- سپل- یو قسم ازغن بوټے- (۲)هغه زمکه چې ستانه دارو ته ویړیا ورکولے شی- (۴)کتابګے- عملنامه- لیک نامه-

څېړ :(څېړ )اسم- څوړ- پټېدنه- ځان پټونه- ځان رانغښتنه- کلکونه- لکونه-

څېړل:(څې-ړل)مصدرِ متعدی- (۱)تحقیق کول- بحث کول- څېړنه کول- (۲)چېړل- تنګول- پۀ عذابول-

څېړلے:(څې-ړۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ څېړل-

څېړن:(څې-ړن)حاصلِ مصدر- وګورئ څېړل-

څېړنپال:(څې-ړن-پال)اسم صفت- مذکر- پوهاند- محقق- (افغانستان)-

څېړندوئے:(څې-ړن-دو-ئے)اسم صفت- د پوهنوال د درجې برابره درجه- (افغانستان)-

څېړنګ:(څې-ړنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ څېړل-

څېړنمل:(څې-ړن-مل)اسم صفت- مذکر- د پوهنمل د درجې برابره درجه- (افغانستان)-

څېړنوال:(څې-ړن-وال)اسم صفت- مذکر- د پوهندوی د درجې برابره درجه- (افغانستان)-

څېړنه:(څې-ړۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ څېړل-

څېړنیار:(څې-ړن-یار)اسم صفت- د پوهنیار د درجې برابره درجه- (افغانستان)-

څېړونکے:(څې-ړون-کے)اسم فاعل- صفت- وګورئ څېړل-

څېړه:(څې-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لیکه- صف- قطار- لېن- (۲)پره- ټولے- غونډه- (۲)مخه- ډډه-

څېړی:(څې-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)بلوط- یو غرنیزه ونه- نباتاتی نوم کورکس بلوط (QUERCUS BALOOT)- (۲)د اوسپنې کنډه چې کنده کښې ې تیر راټینګ کړے وی- (۲)څړی- چوټۍ- د سر چوټکه- (۴)ارغنځه- (۵)اندرپایه-

څېږمه:(څېږ-مه)اسم- واحد- مؤنث- څېزمه- زېږمه- د سترګو هغه برخه چې بانۀ پرې راخیژی-

څېښ:(څېښ)اسم صفت- واحد- مذکر- څېښولے- ړک پۀ ړک- کښېمنډلے- انجاغړی- بیخی ړک- تر مورګو مورګو ړک-

څېښت:(څېښت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تېښته-

څېښتل:(څېښ-تل)مصدر- تښتېدل- تېښته کول- مېدان پرېښودل-

څېښتلے:(څېښ-تۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ څېښتل-

څېښتن:(څېښ-تن)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتل-

څېښتنګ:(څېښ-تنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتل-

څېښتنه:(څېښ-تۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتل-

څېښتونکے:(څېښ-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ څېښتل-

څېښتول:(څېښ-ت-ول)مصدر- وګورئ تښتول-

څېښتولے:(څېښ-ت-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ څېښتول-

څېښتون:(څېښ-ت-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتول-

څېښتونکے:(څېښ-ت-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ څېښتول-

څېښتونګ:(څېښ-ت-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتول-

څېښتونه:(څېښ-ت-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتول-

څېښتوۀ:(څېښ-ت-وۀ)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ څېښتول-

څېښته:(څېښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تېښته-

څېښتېدل:(څېښ-تې-دل)مصدرِ لازم- وګورئ تښتېدل-

څېښتېدلے:(څېښ-تې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ څېښتېدل-

څېښتېدن:(څېښ-تې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتېدل-

څېښتېدنګ:(څېښ-تې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتېدل-

څېښتېدنه:(څېښ-تې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ څېښتېدل-

څېښتېدونکے:(څېښ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ څېښتېدل-

څېښتېدۀ:(څېښ-تې-دۀ)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ څېښتېدل-

څېکړ :(څې-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- سکړ- څکړ- هغه سړے چې ږیره ې لږه وی یا د خنډی پۀ شکل صرف پۀ زنه وی-

ئ" (څی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ځېکے:(ځې-کے)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو يو قسم بيمارى-

ځېکے:(ځې-کے)اسم- واحد- مذکر- ځکے- هغه د اُسپنې جالکے چې پاس خوړند وى او پکښې سامان ايښوے شى-

ځېلمه:(ځېل-مه)صفت- ځېلمې- (۱)ټول- ټېخى- تمام- کرد- (۲)ږخ ته- کناره-

ځېلمې:(ځېل-مې)صفت- وګورئ ځېلمه-

ځېلى:(ځې-لى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تناؤ- طناب- د ېېړى هغه رسى چې ېېړى پرې بلې غاړې ته پورې باسلے شى- (۲)د جامو خوړندولو د پاره تړلے شوے پړے- ځېلے-

ځېلى:(ځې-لى)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سېلى- چېلى- د کټ د پياړمې رسى يا پړے- (۲)خېلى- زبله- جرړه-

ځېلے:(ځې-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ځېلى-

ځېورے:(ځېو-رے)اسم- واحد- مذکر- د شپانو د وسېدو ځاى-

---

زبر"(خ-بـه-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ه"(ز-ړه)، ۀ"(پو-ہې-دۀ)

ح:(حې)حرف- د پښتو د حروف تهجي د پټۍ يولسم حرف چې د ابجدو په حساب يې شمېر اته دے-

ح:(حې)اسم- د حربې يا حرب مخفف شکل- (م- عربي)-

حابس:(حا-بِس)اسم صفت- واحد- مذکر- ستنونکے- ستنونے- مانع- (م- عربي)-

حاتم:(حا-تِم)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حاکم- قاضي- (۲)يو مشهور سخي چې نوم يې عبدالله وو- (م- عربي)-

حاجب:(حا-جِب)اسم صفت- واحد- مذکر- دربان- د ور څوکيدار- ورساتونے- قابوچے- ورسانے- غاوچے- (م- عربي)-

حاجت:(حا-جَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)متازي- اړه- احتياج- ضرورت- (۲)امېد- آرزو- (۳)التجا- (۴)اودس ماتے- (م- عربي)-

حاجتمن:(حا-جَت-مَن)اسم صفت- واحد- مذکر- حاجتمند- ضرورت مند- موتازه- محتاج- آړيه- اړيه-

حاجتمندي:(حا-جَت-مَن-دي)اسم- مؤنث- بده ورځ- تش لاس- موتازي- محتاجي- احتياج- ضرورت-

حاجز:(حا-جِز)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خنډ- پناني- پرده- پړده- هغه څۀ چې د دوؤ څيزونو په مينځ کښې حائل وي- (۲)بيلونکے- (۲)د تورې تېرۀ والے يا تېزي- (م- عربي)-

حاجي:(حا-جي)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې د حج سعادت يې حاصل کړے وي- جمع حاجيان-

حاد:(حادّ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تېز- تېرۀ- پرېکونکے- (۲)نازک حالت- (م- عربي)-

حادث:(حا-دِث)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نوے- تازه- د قديم ضد- (۲)پېدا- پېښ- (م- عربي)-

حادثه:(حا-د-ثه)اسم- واحد- مؤنث- ناګهاني پېښه- پېښه- سخته او دردناکه واقعه- غوړېکه- جمع حادثې- (م- عربي)-

حاده زاويه:(حا-ده-زا-و-يه)اسم- مؤنث- هغه زاويه چې د ۹۰ نه کمه وي-

حاذق:(حا-ذِق)اسم صفت- واحد- مذکر- زيرک- هوښيار- پوه- پوه طبيب- سدمن- (م- عربي)-

حار:(حارّ)اسم صفت- واحد- مذکر- حرارت لرونکے- تود- ګرم- (م- عربي)-

حارث:(حا-رِث)اسم- واحد- مذکر- (۱)زمرے- د سائنسي نوم د پاره وګورئ زمرے- (۲)بزګر- کرونده ګر- (م- عربي)-

حارس:(حا-رِس)اسم صفت- واحد- مذکر- محافظ- ساتندوے- ساتندونکے- ساتونکے- پاسبان-

حارص:(حا-رِص)اسم صفت- واحد- مذکر- حريص- اروا وږے- حرصناک- لالچي- هغه څوک چې صبر پکښې نۀ وي- مؤنث حارصه- (م- عربي)-

حاره:(حا-رِه)اسم صفت- واحد- مؤنث- حرارت لرونکې- ګرمه- توده- (م- عربي)-

حازم:(حا-زِم)اسم صفت- واحد- مذکر- دوراندېش- هوښيار- دانا- (م- عربي)-

حاسب:(حا-سِب)اسم صفت- واحد- مذکر- شمېرګر- حساب لرونکے- (م- عربي)-

حاسد:(حا-سِد)اسم صفت- واحد- مذکر- بد نيته- هغه څوک چې د چا ښۀ ورځ نۀ شي ليدے- حسد کونکے- (م- عربي)-

حاسه:(حا-سه)اسم- واحد- مؤنث- حس- د معلومولو قوت- د ادراک قوت- (م- عربي)-

حاشا:(حا-شا)کلمه- انکار- د انکار کلمه- (م- عربي)-

حاشيه:(حا-شي-يه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غاړه- څنډه- ژۍ- جورې- جاژجي- څورګه- (۲)هغه وضاحتونه چې د کتاب ليکونکي لۀ خوا د کتاب په غاړو په بيله توګه ليکلے کيږي- لمن ليک- (م- عربي)-

حاصد:(حا-صِد)اسم- واحد- مذکر- لوګر- لوګرے- لو کونکے- (م- عربي)-

حاصل:(حا-صِل)اسم- واحد- مذکر- (۱)نتيجه- مېوه- آمدن- ګټه- بوده- ثمر- (۲)خلاصه- (م- عربي)-

حاصل خېز:(حا-صل-خېز)اسم صفت- ښۀ فصل کونکے- زر خېزه زمکه-

حاصلول:(حا-ص-له-وَل)مصدر متعدي- لاس ته راوستل- ګټل- اخستل-

حاصلون:(حا-ص-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ حاصلول-

حاصلونکے:(حا-ص-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حاصلول-

حاصلونګ:(حا-ص-له-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حاصلول-

حاصلونه:(حا-ص-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حاصلول-

حاصلوۀ:(حا-ص-له-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ حاصلول-

حاصلېدل:(حا-ص-لې-دَل)مصدر لازم- ګټلے کېدل- ترلاسه کېدل- بودېدل-

حاصلېدن:(حا-ص-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ حاصلېدل-

حاصلېدنګ:(حا-ص-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حاصلېدل-

حاصلېدنه:(حا-ص-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حاصلېدل-

حاصلېدونکے:(حا-ص-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حاصلېدل-

حاصلېدۀ:(حا-ص-لې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ حاصلېدل-

حاضر:(حا-ضِر)اسم صفت- واحد- مذکر- موجود- تيار- تکړه- اماده- مؤنث حاضره- جمع حاضرين- (م- عربي)-

حاضرباش:(حا-ضر-باش)اسم صفت- واحد- مذکر- خدمتګار- اردلي- محافظ- نوکر- (م- فارسي)-

حاضر جواب:(حا-ضر-ج-واب)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې په جواب ورکولو کښې د حاضر دماغۍ نه کار اخلي- (م- فارسي)-

حاضر جوابي:(حا-ضر-ج-وا-بي)اسم- مؤنث- ژر ځواب ورکونه- حاضر دماغي- ځواب لوڅي- ژر جوابي-

ئ" (څې-رِل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پيا-لي)، ے"(تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

حاضروالے:(حا-ضر-وا-لے)اسم- شته والے- موجودتیا-

حاضرول:(حا-ض-ر-ول)مصدر متعدی- (۱)وړاندې کول- راوستل- مخامخ کول- (۲)تیارول- چمتو کول-

حاضرون:(حا-ض-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ حاضرول-

حاضرونکے:(حا-ض-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حاضرول-

حاضرونګ:(حا-ض-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ حاضرول-

حاضرونه:(حا-ض-ر-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حاضرول-

حاضروۀ:(حا-ض-ر-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ حاضرول-

حاضری:(حا-ض-ری)اسم- مؤنث- موجودتیا-

حاضرین:(حا-ض-رین)اسم- جمع- مذکر/مؤنث- هغه څوک چې پۀ یوه کنه کښې پۀ موقع ناست وی- ناست کسان- دَ حاضر جمع- (م- عربی)-

حاضرېدل:(حا-ض-رې-دل)مصدر لازم- تیارېدل- وړاندې کېدل- مخامخ کېدل- حاضر کېدل- موجودېدل- ښکاره کېدل- (م- عربی حاضر)-

حاضرېدن:(حا-ض-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ حاضرېدل-

حاضرېدنګ:(حا-ض-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ حاضرېدل-

حاضرېدنه:(حا-ض-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حاضرېدل-

حاضرېدونکے:(حا-ض-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حاضرېدل-

حاضرېدۀ:(حا-ض-رې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ حاضرېدل-

حاطه:(حا-طه)اسم- واحد- مؤنث- پۀ چاردیواری کښې دننه زمکه- خاته- (م- عربی)-

حافظ:(حا-فظ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه څوک چې قرآن شریف ورته پۀ یادۀ یاد وی- (۲)پۀ سترګو معذوره- اپیچی- (۳)ساتونکے- ساتندوے- مونث حافظه- (م- عربی)-

حافظه:(حا-ف-ظه)اسم- واحد - مؤنث- یاداشت- دَ یاد ساتلو قوت- یادښت- یاداښت- (م- عربی)-

حافی:(حا-فی)اسم صفت- واحد- مذکر- پیاده- پښې پیل- (م- عربی)-

حاکم:(حا-کم)اسم صفت- واحد- مذکر- واک دار- احتیار لرونکے- حکومت کونکے- آقا- مالک- فرمانروا- بادشاه- مؤنث حاکمه- جمع حاکمان- (م- عربی)-

حاکمیت:(حا-کی-می-یت)اسم- مذکر- اقتدار- واک- اختیار- (م- عربی)-

حال:(حال)اسم- واحد- مذکر- (۱)درک- پته- (۲)موجوده وخت- اوسنے وخت- (۳)حالت- (م- عربی)-

حال احوال:(حال-اح-وال)اسم مرکب- تپوس- خبر- حالات- خبر خبر- (م- عربی)-

حالانکې:(حا-لان-کې)کلمه- اګر چې- درحال- دراصل- اصل کښې- (م- فارسی)-

حالب:(حا-لب)اسم صفت- واحد- مذکر- لوشونکے- لوشلو والا- لوښونے-

حالت:(حا-لت)اسم- واحد- مذکر- حال- کېفیت- وضع-

حالتی:(حا-ل-تی)صفت- دَ حالت متعلق-

حالی:(حا-لی)اسم صفت- واحد- مذکر- اوسنے- موجوده- حاضر-

حامل:(حا-مل)اسم صفت- واحد- مذکر- باردار- دَ څۀ څیز لرونکے- (۲)حمل کونکے- بار وړونکے- (م- عربی)-

حاملګی:(حا-مل-ګی)اسم- (۱)امېدواری- بلاربوالے- (۲)ټیکاؤ کېدنه-

حامله:(حا-م-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- امېداواره ښځه- هغه ښځه چې ماشوم یې پۀ خېټه وی- چې حمل یې شوے وی- بلاربه- ډکه- پړه- تنده- تانده- (م- عربی)-

حامی:(حا-می)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حمایت کونکے- ملاتړ- ساتندوئے- سپلندوئے- سپلګرے- (۲)دَ نوح علیه السلام زوئ حام ته منسوب- دَ حام لۀ نسله- (۳)تور- حبشی- (۴)دَ لرغونی مصر، دَ بربر دَ قومونو او نمرختیزې افریقې ژبې- (م- عربی)-

حاوی:(حا-وی)اسم صفت- واحد- مذکر- احاطه کونکے- چاپېرونکے- (۲)قابض- غالب-

حانب:(حا-نب)اسم صفت- واحد- مذکر- وبالی- ګناه ګار- (م- عربی)-

حانز:(حا-نز)صفت- واحد- مذکر- لرونکے- ساتونکے- درلودونکے- (م- عربی)-

حائضه:(حا-ء-ضه)اسم صفت- واحد- مذکر- حېض داره- هغه ښځه چې جامې یې کیری- (م- عربی)-

حائط:(حا-نط)اسم- واحد- مذکر- دېوال- (م- عربی)-

حائک:(حا-نک)اسم صفت- واحد- مذکر- ودونکے- نداف- نداف-

حایل:(حا-ال/حا-یل))صفت- واحد- مذکر- ستنونکے- پۀ مېنځ کښې راتلونکے- دَ لارې خنډ جوړېدونکے- (م- عربی)-

حائلېدل:(حا-ا-لې-دل)مصدر لازم- حائل کېدل- پۀ مېنځ کښې راتلل-

حائلېدن:(حا-ا-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ حائلېدل-

حائلېدنګ:(حا-ا-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ حائلېدل-

حائلېدنه:(حا-ا-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حائلېدل-

حائلېدونکے:(حا-ا-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حائلېدل-

حائلېدۀ:(حا-ا-لې-دۀ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ حائلېدل-

حب:(حب)اسم- واحد- مذکر- دانه- نینه-

حب:(حب)اسم- واحد- مذکر- محبت- مینه- عشق- دوستی-

حباب:(ح-باب)اسم- واحد- مذکر- دَ أبو غولی- بوړبوړکی- دَ أبو غوړ غوړی- بوکی- پوڼکه- دَ ابو پۀ سر دَ هوا جوړېدونکې بړبوقی یا پوکنۍ- (م- عربی)-

حباله:(ح-با-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دام- لومه- (۲)رسی- پړے- (۳)نکاح-

زبر"(خ-بۀ-ره)، زورکے"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ة"(ز-وه)، ۀ"(پو-ښې-دۀ)

حبانامه:(حِ-با-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)عمل- کړه- (۲)سند- قباله-

حبته:(حَ-بَ-ته)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- ابته- حبطه- لړلے- گنده شوے-

حبس:(حَبس)اسم- واحد- مذکر- (۱)بندی کونه- (۲)بند- قېد- جېل- زندان- اړیخے- (م- عربی)-

حبسول:(حَب-س-وَل)مصدرِ متعدی- قېدول- بندی کول- په زندان کښې اچول- (م- عربی)-

حبسولے:(حَب-س-وَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ حبسول-

حبسون:(حَب-س-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حبسول-

حبسونکے:(حَب-س-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حبسول-

حبسونګ:(حَب-س-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حبسول-

حبسونه:(حَب-س-وَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حبسول-

حبسوه:(حَب-س-وَه)حاصلِ مصدر- وګورئ حبسول-

حبسېدل:(حب-سې-دَل)مصدرِ لازم- قېدېدل- بندی کېدل- (افغانستان)-

حبسېدلے:(حَب-سې-دَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ حبسېدل-

حبسېدن:(حَب-سې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حبسېدل-

حبسېدنګ:(حَب-سې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حبسېدل-

حبسېدنه:(حَب-سې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حبسېدل-

حبسېدونکے:(حَب-سې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حبسېدل-

حبسېده:(حَب-سې-دَه)حاصلِ مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ حبسېدل-

حبشی:(حَ-بَ-شی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- حبش ته منسوب- د حبش وسېدونکے- (۲)تور- توره-

حبطه:(حَ-بَ-طه)اسم صفت- فضول- بې فائدې- ابته- ناپاک- ضعیف- کمزورے- خفه- بابېزه- (م- عربی)-

حبلی:(حُ-بَ-لی)صفت- وګورئ حامله- (م- عربی)-

حبوب:(حُ-بوب)اسم- جمع- مؤنث- غلې دانې- د حَب جمع- غله جات- (م- عربی)-

حبوبات:(حُ-بو-بات)اسم- جمع- وګورئ حبوب- (م- عربی)-

حبیب:(حَ-بیب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- محبوب- دوست- زړه ته نژدې- معشوق- مؤنث حبیبه- (م- عربی)-

حتم:(حَ-تم)متعلق فعل- مرومرو- ارومرو- خواه مخا- ضرور- (م- عربی)-

حتماً:(حت-من)متعلقِ فعل- خامخا- ارومرو- ضرور- مرومرو- (م- عربی)-

حتمی:(حَت-می)متعلقِ فعل- لازمی- بې شرطه- ضروری- آخری- (م- عربی)-

حتٰی:(حَت-تا)متعلقِ فعل- (۱)تر هغه چې- تر څو پورې چې- (۲)تروسه- (م- عربی)-

حج:(حَج)اسم- واحد- مذکر- د پنج بناء اسلام نه پینځم رُکن او فرض عین-

حجاب:(حِ-جاب)اسم- واحد- مذکر- (۱)پلو- پرده- نقاب- (۲)شرم- حیا-

حجاج:(حُ-جاج)اسمِ صفت- جمع- مذکر- د حاجی جمع- (م- عربی)-

حجار:(حَ-جار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- سنګ تراش- تیږه توږونکے- (م- عربی)-

حجاری:(حِ-جا-ری)اسم- مؤنث- تیږې تراشنه- د حجار کسب- (م- عربی)-

حجازی:(حِ-جا-زی)اسم- واحد- مذکر- (۱)د حجاز سره منسوب- (۲)د انبار او حیره د قبیلو یو قسم لیک زه چې په عربو کښې د اسلام د راتلو تر وخته مروج وه-

حجامت:(حِ-جا-مَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)وېره خرینه- وېره کلونه- شېو کونه- (۲)وېره- (م- فارسی)-

حجانی:(حُ-جا-نی)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ اجانی-

حجت:(حُ-جَت)اسم- واحد- مذکر- برهان- دلیل- سند- (م- عربی)-

حجتی:(حُ-جَ-تی)اسم صفت- واحد- مذکر- حجت کونکے- حجت اخستونکے-

حجر:(حَ-جر)اسم- واحد- مذکر- تیږه- کانے- ډبره- (م- عربی)-

حجرالاسود:(حَ-جَ-رل-اَس-وَد)اسم- واحد- مذکر- د کعبې شریفې په دېوال کښې د لګېدلی کاڼی نوم- وائی چې ابراهیم علیه السلام به کله د کعبې شریفې دېوال جوړولو نو دا کاڼے به یې د پښو لاندې ایښودو- (م- عربی)-

حجره:(حُج-ره)اسم- واحد- مؤنث- د نارینه مېلمنو د ناستې ځایَ- د پښتنو نارینو د ناستې ځایَ- اُجره- دېره- ډېره- کوټګی- (م- عربی)-

حجم:(حَ-جم)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د څه څیز غټ والے یا جسامت- (۲)قوت- قدرت- توان- (م- عربی)-

حد:(حَد)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوله- برید- د څه څیز آخری ژی- (۲)حائل- (۳)جزا- بدنی مجازات- جمع حدود\حدونه- (م- عربی)-

حداد:(حَ-داد)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)محافظ- (۲)اسپنه خرڅونکے-

حدبندی:(حد-بَن-دی)اسم- مؤنث- حد مقررونه- مقام مقررونه-

حدت:(حد-دَت)اسم- واحد- مذکر- کوتار- تُندی- تېزی- غصه- تاؤ- ګرموالے- خوشکه- قهر- (م- عربی)-

حدس:(حَدس)اسم- واحد- مذکر- ګومان- قیاس- اټکل- تخمین- (م- عربی)-

حدوث:(حُ-دوث)اسم- مذکر- نوے والے- د قدامت او اولیت برعکس حالت- (م- عربی)-

حدود:(حُ-دود)اسم- جمع- مذکر- (۱)پولې- حدونه- بریدونه- (۲)اسلامی حدود- اسلامی دفعې- د حد جمع- (م- عربی)-

حدیث:(حَ-دیث)اسم- واحد- مذکر- (۱)نوے- تازه- جدید- (۲)خبر- خبره- (۳)د رسولِ کریم علیه السلام اقوال- (م- عربی)-

حدیقه:(حَ-دی-قه)اسم- واحد- مؤنث- باغچه- وړوکے او په دېوالونو کښې کېر باغ- باغیچه- باغ بڼ- (م- عربی)-

حذاء:(حِ-ذاء)اسم- واحد- مؤنث- په یوه کرښه یا صف کښې نېغونه- سمونه- برابرونه-

ی (څی-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ی (پیا-لی)، ئ (تن-دېی) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

حذر:(حَ-ذَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځان ساتنه- پرهېز- اجتناب- ډډه کونه- ځان ژغورنه- (۲)وېره- ډار- بېره- (م- عربي)-

حذف:(حَ-ذَف)اسم- واحد- مذکر- (۱)اچونه- غورځونه- لرې کونه- (۲)يو توري د مېنځ نه وېستنه- (م- عربي)-

حذفول:(حَ-ذَ-فَ-وَل)مصدر متعدي- (۱)اچول- غورځول- لرې کول- (۲)يو توري د مېنځ نه وېستل-

حذفون:(حَ-ذَ-فَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ حذفول-

حذفونکے:(حَ-ذَ-فَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حذفول-

حذفونګ:(حَ-ذَ-فَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حذفول-

حذفونه:(حَ-ذَ-فَ-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ حذفول-

حذفوه:(حَ-ذَ-فَ-وَه)حاصل مصدر- وګورئ حذفول-

حُر:(حُر)اسم صفت- واحد- مذکر- سامو- آزاد- خپلواک- د مرئی ضد- (م- عربي)-

حر:(حُر)اسم- واحد- مذکر- تودوالے- تودوخه- حرارت- ګرمي-

حراج:(حَ-راج)اسم- واحد- مذکر- نيلام کونه- نيلامونه- لېلامونه- (م- عربي)-

حرارت:(حَ-را-رَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)تودوالے- تودوخه- (۲)لړه تبه-

حراست:(حَ-را-سَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)قبضه- (۲)حفاظت- ساتنه- څارنه- (م- عربي)-

حرام:(حَ-رام)اسم- واحد- مذکر- هغه څه چې په شريعت کښې د هغې کول يا خوړل منع وي- ناروا- د حلال ضد- (م- عربي)-

حرامتوب:(حَ-رام-توب)اسم- مذکر- شېطاني- وران کاري- بدمعاشي- حرامتيا- حرام والے- حرامتوبي-

حرامتوبي:(حَ-رام-تو-بي)اسم- مؤنث- وګورئ حرامتوب-

حرامتيا:(حَ-رام-تيا)اسم- مؤنث- وګورئ حرامتوب-

حرام خور:(حَ-رام-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- په ناجائزه طريقه پېسې حاصلونکے- حرام خوړونکے-

حرام خوری:(حَ-رام-خو-ري)اسم- مؤنث- حرام څيزونه خوړنه- په حرامه طريقه پېسې پېدا کونه-

حرام زادګی:(حَ-رام-زاد-ګي)اسم- مؤنث- (۱)د خپل مالک خبره نه منل- (۲)ټګی کول- چل ول کول- غلطي- فرېبکاري-

حرام زاده:(حَ-رام-زا-ده)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ارامونے- حرامونے- هغه څوک چې د ده د پېدا کېدو نه مخکښې مور ې چاسره زنا کړې وي- (۲)ټګی ژن- چل باز-

حرام کار:(حَ-رام-کار)اسم صفت- حرام کارونه کونکے- زنا کار-

حرام کاری:(حَ-رام-کا-ري)اسم- مؤنث- حراميتوب- بد کاري- رسوا کول- بدنامول- د چا عزت اخستل- ناجائز تعلق- په حرامه توګه د چا سره بد کاري کول- ناجائزه تعلق ساتل-

حرام مغز:(حَ-رام-مَغز)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ملا د تير مازغه- (۲)د چا يا د څه څيز ډېر اهم کردار-

حرامنه:(حَ-را-مَه-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د حرامي مؤنث- بې تميزه او خرابه ښځه-

حراموالے:(حَ-رام-وا-لے)اسم- وګورئ حرامتوب-

حرامول:(حَ-را-مَ-وَل)مصدر متعدي- منع کول- حرام ګرځول- بندول- ناجائز ګڼل-

حرامون:(حَ-را-مَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ حرامول-

حرامونکے:(حَ-را-مَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حرامول-

حرامونګ:(حَ-را-مَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حرامول-

حرامونه:(حَ-را-مَ-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ حرامول-

حرامونے:(حَ-را-مو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ حرامي- مؤنث حرامونې-

حراموه:(حَ-را-مَ-وَه)حاصل مصدر- وګورئ حرامول-

حرامی:(حَ-را-مي)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حرامونے- ارامي- ولدالزنا- د زنا پېدا- په غلطه طريقه پېدا شوے- حرام زاده- (۲)غل- شېطان- ورانکارے- بدمعاش-

حراميتوب:(حَ-را-مي-توب)اسم- (۱)بدکاري- حرام زاده توب- بې خوندي- ورانکاري- لوچه توب- سپکارے-

حرامېدل:(حَ-را-مې-دَل)مصدر لازم- منع کېدل- ناروا کېدل- بندېدل-

حرامېدن:(حَ-را-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ حرامېدل-

حرامېدنګ:(حَ-را-مې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حرامېدل-

حرامېدنه:(حَ-را-مې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ حرامېدل-

حرامېدونکے:(حَ-را-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حرامېدل-

حرامېده:(حَ-را-مې-دَه)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ حرامېدل-

حراند:(حَ-راند)اسم صفت- واحد- مذکر- يرمن- ويرندوکے-

حرب:(حَرب)اسم- واحد- مذکر- (۱)جنګ- جګړه- (۲)مقدمه- (م- عربي)-

حربه:(حَر-به)اسم- واحد- مؤنث- چل- تدبير- طريقه- د غرض او مقصد حاصلولو ذريعه- (۲)وسله- اسلحه- (م- عربي)-

حربی:(حَر-بي)صفت- حرب سره منسوب-

حربيه:(حَر-بي-يه)اسم- واحد- مؤنث- د جنګ جګړې- حربي-

حرج:(حَ-رَج)اسم- واحد- مذکر- (۱)تنګسه- نقصان- ضرر- زحمت- مشکل- (۲)تنګ ځاې- (م- عربي)-

حرص:(حِ-رص)اسم- واحد- مذکر- لالچ- طمع- د هر څيز د حد نه زياته غښتنه- (م- عربي)-

حرصناک:(حِ-رص-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ حارص- مؤنث حرصناکه- (م- عربي)-

حرصي:(ح-رهٔ-صي)اسم صفت- واحد- مذکر- لالچی- حرص کونکے- حرصناک- (م- عربی)-

حرف:(حرف)هغه کلمه چې نهٔ اسم وی او نهٔ فعل وی- خو چې د بلې کلمې سره یو ځایْ شی نو معنیٰ پېدا کوی- ځانله معنیٰ نهٔ لری- مثلاً- ا-ب-ج-د وغېره- جمع حرفونه- (م- عربی)-

حرف پهٔ حرف:(حرف-پهٔ-حرف)متعلق فعل- ټکی پهٔ ټکي- لفظ پهٔ لفظ-

حرف گیر:(حرف-گیر)اسم صفت- واحد- مذکر- عېب جو- نقاد- نکته چین-

حرف گیری:(حرف-گی-ری)اسم- نکته چینی- تنقید- گُته نیونه- کتنه-

حرفه:(حر-فه)اسم- واحد- مؤنث- پېشه- کار کسب- چاره- مسلک-

حرکت:(ح-ر-کت)اسم- واحد- مذکر- خوځېدنه- ړقېدنه- ښورېدنه- جوټه- دَ سکون ضد-

حرم:(ح-رم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کعبې شريفې دننه برخه- دَ کعبې خواوشا- (۲)دَ کور دننه برخه- انګړ- انګڼ- غولے- (۳)منع کړے شوے ځایْ- (۴)کډه- بال بچ- اولاد- عیال- (م- عربی)-

حرمت:(حر-مت)اسم- واحد- مذکر- (۱)عزت- لحاظ- خیال ساتنه- مقدس گڼنه- (۲)حرامېدنه- ناروا کېدنه-

حرم خانه:(ح-رم-خا-نه)اسم مرکب- واحد- مؤنث- دلبار- حرم- دَ بیبیانو دَ ناستې او وسېدو ځایْ- دَ باچاهانو زنانهٔ دَ وسېدو حرم- دَ پرده دارو دَ وسېدو ځایْ-

حرمېن:(ح-ر-مېن)اسم- جمع- مذکر- مکه معظمه او مدینه منوره- (م- عربی)-

حرنړ:(ح-رنړ)اسم- وګورئ انګاره-

حروف التاج:(ح-رو-فت-تاج)اسم- مذکر- دَ لیک یو قسم- یو قسم لیک- (م- عربی)-

حروف چین:(ح-روف-چین)اسم- واحد- مذکر- دَ مطبعې هغه کاریګر چې دَ کتابونو رسالو او اخبارونو مضمون دَ توریو پهٔ وسیله ترتیبوی او چاپ ته يې تیاروی- (افغانستان)-

حروف تهجی:(ح-رو-ف-ت-هج-جی)اسم- دَ یوې ژبې بنیادی حرفونه چې دَ یو بل سره یو ځایْ شی نو توری ترې جوړ شی او دَ دې پهٔ بنیاد دَ تورو هجې کولے شی- لکه ا ب ج یا دَ انګرېزی : A,B,C : وغېره-

حروف چیني:(ح-روف-چي-ني)اسم- مؤنث- دَ حروف چین کسب-

حروفي:(ح-رو-في)صفت- دَ حروفو- پهٔ توریو مربوط- دَ حروف سره منسوب-

حریان:(حر-یان)اسم صفت- واحد- مذکر- حېران- اریان- حېرت وړے-

حریان دریان:(حر-یان-در-یان)اسم صفت- واحد- مذکر- مؤنث حریانه دریانه- اریان دریان- اکه پکه- حق پق- حېران- گُته پهٔ خُلهٔ-

حریاني:(حر-یا-ني)اسم- مؤنث- (۱)حېراني- (۲)عجوبه- عجیبه-

حریر:(ح-ریر)اسم- واحد- مذکر- رېښم- دَ رېښمو ټوکے- ورېښمينه جامه-

حریری:(ح-ري-ری)اسم- دَ ورېښمو خرڅونکے-

حریص:(ح-ریص)اسم صفت- واحد- مذکر- حرصناک- سرابن- وږ- سترګې اروا وږے- سولند- سولوږے- سولندک- بدسولے- سولنده- لالچی- خېټو- ګېډور- سیالی مار- مؤنث حریصه- جمع حریصان-

حریف:(ح-ریف)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)رقیب- (۲)مخالف- (۲)سیالی کونکے-

حریق:(ح-ریق)اسم- واحد- مذکر- سوے- لمبه- شعله- پهٔ اور سوځېدنه- اور لګېدنه- اور اخستنه-

حریم:(ح-ریم)اسم- واحد- مذکر- هغه ځهٔ چې منع کړے شوی وی-

حړپے:(حړ-پے)اسم- واحد- مذکر- (۱)تونګ- (۲)دبلے-

حزب:(حزب)اسم- واحد- مذکر- دَ قرآن پاک هغه برخه چې پهٔ یوه ورځ لُستلے کېږی- (۲)ډله- پارټي-

حزبي:(حز-بي)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ حزب- دَ پارټۍ- دَ ډلې-

حزین:(ح-زین)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- دلګیر- خفه- غمژن- نولژن-

حس:(حس)اسم- واحد- مذکر- ادراک- احساس- بېداری- (۲)خمیر- (۲)حرکت- ژوند- ساه-

حساب:(ح-ساب)اسم- واحد- مذکر- (۱)شمارنه- شمېر- شمار- (۲)دَ شمارې علم- (۳)مال- دولت- روپۍ پېسې- (۴)دَ ژوند اُربشه- (م- عربی)-

حسابداري:(ح-ساب-دا-ري)اسم- مؤنث- دَ حساب دَ علم اُصول او قانون (کُلیې)-

حسابول:(ح-سا-به-ول)مصدر متعدی- ګڼل- شمارل- حساب کول-

حسابون:(ح-سا-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ حسابول-

حسابونکے:(ح-سا-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حسابول-

حسابونګ:(ح-سا-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ حسابول-

حسابونه:(ح-سا-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حسابول-

حسابوهٔ:(ح-سا-به-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ حسابول-

حسابی:(ح-سا-بي)صفت/متعلق فعل- دَ حساب- حساب ته منسوب-

حسابېدل:(ح-سا-بې-دل)مصدر لازم- پهٔ شمېر کښې راوستل- حساب کېدل- شمېرل-

حسابېدن:(ح-سا-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ حسابېدل-

حسابېدنګ:(ح-سا-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ حسابېدل-

حسابېدنه:(ح-سا-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حسابېدل-

حسابېدونکے:(ح-سا-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حسابېدل-

حسابېدهٔ:(ح-سا-بې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ حسابېدل-

حسادت:(ح-سا-دت)اسم- واحد- مذکر- حسد- کینه- بُغض- (م- عربی)-

حساس:(ح-ساس)(حس-ساس)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نازک مزاجه- (۲)ژر پوهېدونکے- تېز حس لرونکے- ذهین- (م- عربی)-

حساسیت:(ح-سا-سي-يت)اسم- حساس توب- حساس تیا-

حسام:(حُ-سامَ)(حُس-سام)اسم- واحد- مذکر- توره- تېره توره- (م- عربی)-

حسب:(حَ-سَب)اسم- واحد- مذکر- (۱)وقار- شرف- عظمت- (۲)خانداني لوئ والے- (۳)ټبر- حسب نسب- ذات زوریات- اصل نسل- نوغے- جرړه- شجره- (۴)مطابق- برابر- سم- (م- عربی)-

حسب:(حسبَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)شمېرنه- ګڼنه- (۲)کفایت- بسوالے- (م- عربی)-

حسد:(حَ-سَد)اسم- واحد- مذکر- بُغض- کینه- رخه- (م- عربی)-

حسرت:(حَس-رَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ارمان- افسوس- (۲)ارمان کونه- افسوس کونه- (م- عربی)-

حُسن:(حُ-سن)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښکلا- ښائست- جمال- (م- عربی)-

حسن:(حَ-سَن)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښکلے- ښائسته- (۲)نېک- ښۀ- (م- عربی)-

حسنات:(حَ-سَ-ناتَ)اسم- جمع- مذکر- دَ خېر ښېګړې او نېکی کارونه- نېکي- ښېګړې-

حسن تعلیل:(حُس-ن-تع-لیل)اسم- دَ شاعر دَ محبوب یا دَ چا دَ صفت کولو پۀ وخت شعر کښې مناسب علت استعمالول- (م- عربی)-

حسن خط:(حُس-ن-خط)اسم- ښکلے او نوموړے خط چې دَ کتابت دَ اُصولو پۀ معیار پوره وی-

حسن خلق:(حُس-ن-خُلقَ)اسم- واحد- مذکر- ښۀ، نېک او پاک خوئ- ښۀ اخلاق- (م- عربی)-

حسن مقطع:(حُس-ن-مق-طع)اسم- کله چې شاعر خپل کلام پۀ زړۀ راکښونکو الفاظو سره بې لۀ څۀ شرطه قطع کړی-

حسن نظر:(حُس-ن-نَ-ظر)اسم- نېک نظر- ښۀ نظر- پېرزوینه-

حسن نیت:(حُس-ن-نیت)اسم- پېرزوینه- ښۀ نیت- (م- عربی)-

حسنه:(حَ-سَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- ښېګړه- نېکی- (م- عربی)-

حسود:(حَ-سُود)اسمِ صفت- واحد- مذکر- حاسد- کینه ور- بغضی- (م- عربی)-

حسول:(حِ-سَ-وَل)مصدر متعدی- احساس کول- محسوسول- پۀ خیال کښې راوستل-

حسون:(حِ-سَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حسول-

حسونکے:(حِ-س-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حسول-

حسونګ:(حِ-سَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حسول-

حسونه:(حِ-سَ-وَۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حسول-

حسوۀ:(حِ-سَ-وَۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ حسول-

حسی:(حِ-سی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ حس- دَ درک- دَ پوهې-

حسیب:(حَ-سیب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- شمېرونکے- ګڼونکے- محاسب- حاسب کونکے-

حسېدل:(حِ-سې-دَل)مصدر لازم- احساس کېدل- حس کېدل- پوهېدل-

حسېدلے:(حِ-سې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع حسېدلی- مؤنث حسېدلې- وګورئ حسېدل-

حسېدن:(حِ-سې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حسېدل-

حسېدنګ:(حِ-سې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حسېدل-

حسېدنه:(حِ-سې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حسېدل-

حسېدونکے:(حِ-سې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حسېدل-

حسېدۀ:(حِ-سې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ حسېدل-

حسین:(حَ-سین)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ښُکلے- ښائسته- ښېمخے- (م- عربی)-

حسینی:(حُ-سے-ني)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)دَ حسېن علیه السلام سره منسوب- (۲)سور او ګلابی- (۳)یو قسم انګور-

حشر:(حَ-شر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګڼه ګوڼه جوړونه- راټولونه- راغونډونه- (۲)پاڅونه- پنځ- پنځے- (۳)شور- غوغا- (۴)دَ حشر ورځ- قیامت- دَ جزا ورځ- (م- عربی)-

حشر نشر:(حَ-شر-نَ-شر)اسم- واحد- مذکر- (۱)حشر- ګڼه ګوڼه- ډېر زیات خلق- (۲)شور غاږ- شور شغرب- (م- عربی)-

حشره:(حَ-شَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- مُلخ- چینجے- کېږړے- ماشے- مېږے- مچ وغېره- جمع حشرات/حشرې- (م- عربی)-

حشم:(حَ-شم)اسم- واحد- مذکر- (۱)اهل وعیال- خاندان- (۲)نوکر- ملازم-

حشمت:(حَش-مت)اسم- واحد- مذکر- دبدبه- عظمت- شان وشوکت- رُعب داب- جاه وجلال- (م- عربی)

حصار:(حِ-صار)اسم- واحد- مذکر- قلعه- کوټ- قله- (م- عربی)-

حصار:(حِ-صار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ایسار- محاصره شوے- کله بند- قلعه بند- بند- ګېر راګېر- معطل- (م- عربی)-

حصارول:(حِ-صا-ره-وَل)مصدر متعدی- محاصره کول- ایسارول- اټالول- بندول-

حصارون:(حِ-صا-ره-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حصارول-

حصارونکے:(حِ-صا-ره-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حصارول-

حصارونګ:(حِ-صا-ره-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حصارول-

حصارونه:(حِ-صا-ره-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حصارول-

حصاروۀ:(حِ-صا-ره-وۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ حصارول-

حصارېدل:(حِ-صا-رې-دَل)مصدر لازم- محاصره کېدل- ایسارېدل- اټالېدل-

حصارېدن:(حِ-صا-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حصارېدل-

حصارېدنګ:(حِ-صا-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حصارېدل-

حصارېدنه:(حِ-صا-رې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حصارېدل-

حصارېدونکے:(حِ-صا-رې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ

حصارېدل-

حصارېدهٔ:(ح-صا-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ حصارېدل-

حصر :(حَ-صَر)اسم- واحد- مذکر- ګېرونه- بندونه- تنګونه- محدودونه- احاطه کونه- (م- عربي)-

حصول:(حُ-صول)اسم- واحد- مذکر- حاصلونه- لاس ته راوستنه-

حصولول:(حُ-صُو-له-وَل)مصدرِ متعدي- حاصلول- لاس ته راوستل- تر لاسه کول-

حصولون:(حُ-صُو-له-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حصولول-

حصولونکے:(حُ-صُو-له-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حصولول-

حصولونګ:(حُ-صُو-له-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حصولول-

حصولونه:(حُ-صُو-له-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حصولول-

حصولوهٔ:(حُ-صُو-له-وَهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ حصولول-

حصولېدل:(حُ-صُو-لې-دَل)مصدرِ لازم- تر لاسه راتلل- حاصلېدل-

حصولېدلے:(حُ-صُو-لې-دَه-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ حصولېدل-

حصولېدن:(حُ-صُو-لې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حصولېدل-

حصولېدنګ:(حُ-صُو-لې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حصولېدل-

حصولېدنه:(حُ-صُو-لې-دَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حصولېدل-

حصولېدونکے:(حُ-صُو-لې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حصولېدل-

حصولېدهٔ:(حُ-صُو-لې-دَهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ حصولېدل-

حصه:(حِ-صه)اسم- واحد- مؤنث- برخه- بخره- ونډه- حق- ابره- جمع حصې-

حصه دار:(حِ-صه-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- برخه لرونکے- حصه لرونکے-

حصه داري:(حِ-صه-دا-ري)اسم- مؤنث- انډې والي- حصه لرنه- شراکت داري-

حصير:(حَ-صير)اسم- واحد- مذکر- بوريا- انډبرے- پوزے-

حضرت:(حَض-رَت)کلمه- دَ احترام او عزت کلمه-

حضور:(حُ-ضُور)اسم- واحد- مذکر- (۱)موجودګي- حاضري- مخامخ- (۲)جناب- حضرت-

حضوري:(حُ-ضو-ري)اسم- مؤنث- مخامخ- دَ حضور-

حظ:(حَظ)اسم- مزه- ذائقه- لذت- (اخستل مصدر)-

حفاظت:(حِ-فا-ظَت)اسم- واحد- مذکر- احتياط- ساتنه- پهٔ نظر کښې ساتنه- نګراني-

حفاظتي:(حِ-فا-ظَ-تي)صفت/متعلق فعل- (۱)دَ ساتنې- دَ حفاظت- دَ حراست- (۲)امنيتي-

حفر:(حَ-فر)اسم- واحد- مذکر- (۱)کننه- ژورونه- کنستنه- (۲)پلټونه- دَ آثار قديمه پلټنه يا اټونه- (م- عربي)-

حفظ:(حِفظ)اسم- واحد- مذکر- (۱)حافظې ته سپارنه- پهٔ ياد کونه- يادونه- (۲)ساتنه- (م- عربي)-

حفظ الصحه:(حِف-ظص-ص-حه)اسم- مؤنث- دَ صحت ساتنه- روغتيا پالنه- روغتيا ساتنه- (م- عربي)-

حفظ ماتقدم:(حِف-ظ-ما-تَ-قد-دم)اسم- مذکر- دَ اول نه دَ ځان ساتنې تدبير- دَ يوې پېښې دَ پېښېدو مخه نيونه- دَ مخکښې نه حفاظت- (م- عربي)-

حفظيه:(حِف-ظي-يه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ساتلو ځائ- (۲)حفاظت- ساتنه- (م- عربي)-

حفيد:(حَ-فيد)اسم- واحد- مذکر- دَ زوئ زوئ- نمسے- نوسے- دَ نمسی نه بشکته رشته- (م- عربي)-

حفيظ:(حَ-فيظ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ الله پاک دَ نومونو نه يو نوم- (۲)ساتونکے- ساتندونے- (م- عربي)-

حق:(حَق)اسم- واحد- مذکر- (۱)فرض- ذمه واري- (۲)انصاف- عدل- ديانت- (۳)برخه- حصه- صله- مزدوري- (۴)منصب- اختيار- (۵)رښتيا- حقيقت- (۶)باب- نسبت- (م- عربي)-

حق:(حَق)صفت- (۱)دَ الله پاک يو صفتي نوم- (۲)رښتونے- ورِ- سچ- جوګه- لائق- صحيح- درست- ټيک- جائز- دَ باطل ضد- (م- عربي)-

حقارت:(حِ-قا-رَت)اسم- واحد- مذکر- سپکاوے- سپکوالے- پهٔ سپک نظر کتنه- (م- عربي)-

حق الاجاره:(حَق-قُل-ا-جا-ره)اسم- دَ ايجارې حق- غله دانه يا ټاکلے شوې روپۍ چې اجاره دار نه اخستے شي- (م- عربي)-

حق الانحصار:(حَق-قُل-اِن-حِ-صار)اسم- دَ انحصار حق- دَ انحصار امتياز- (م- عربي)-

حق الازحمت:(حَق-قُل-زح-مَت)اسم- وګورئ حق الزحمه- (م- عربي)-

حق الزحمه:(حَق-قُل-زح-مه)اسم- مزدوري- دَ کار اُجرت- (م- عربي)-

حق العبد:(حَق-قُل- عَبد)اسم- واحد- مذکر- دَ انسان پهٔ بل حق- انساني حق-

حق العبور:(حَق-قُل-عُ-بُور)اسم- مذکر- محصول- چونګے- (م- عربي)-

حق الله:(حَق-قُل-لاه)اسم- واحد- مذکر- هغه حق چې دَ الله دَ طرفه متعين شوے وي- يعنې دَ الله پاک عبادت- (م- عربي)-

حقانه:(حَق-قا-نه)متعلق فعل- واحد- مذکر- پهٔ حقه- پهٔ رښتيا-

حقاني:(حَق-قا-ني)اسم صفت- واحد- مذکر- رښتونے- پهٔ حقه- حق ته منسوب- ټيک-

حقانيت:(حَق-قا-ني-يَت)اسم- رښتيا والے- حق والے- رښتين توب-

حقائق:(حَ-قا-ئق)اسم- جمع- مذکر- حقيقتونه- دَ حقيقت جمع-

حق بجانب:(حَق-بہ-جا-نب)صفت- مذکر- پهٔ حق- ټيک- حق خوا ته-

حق بین:(حَق-بین)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- ریشتیا ویونکے- دَ حق ویونکے- باانصافه- انصاف کونکے- حق کتونکے- (م- فارسی)-

حق بیني:(حَق-بی-ني)اسم- حق لیدنه- حقانیت- حق کتنه- (م- فارسی)-

حق پرست:(حَق-په-رَست)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ حقه لاره روان- دَ حق او رښتیاؤ ملګرے- (م- فارسی)-

حق پسند:(حَق-په-سَند)صفت- واحد/جمع- مذکر- راست باز- حق خوښونکے-

حق پوش:(حق-پوش)اسم صفت- واحد- مذکر- حق پټونکے- دَ حقې خبرې نهٔ بیانونکے- باطل- (م- فارسی)-

حق تلفي:(حَق-تل-في)اسم- واحد- مؤنث- دَ چا حق وهنه- دَ حق نه سترګې پټونه- استحصال- (م- فارسی)-

حق حلال:(حَق-حَ-لال)اسم صفت (مرکب)- حلال حلال- جائز- پهٔ روا- چې هیڅ ناجائز او ناروا پکښې نهٔ خائیږي- سوچه حلال-

حق حېران:(حَق-حَے-رانَ)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- اکه پکه- حق پق- حېران دریان- اریان دریان-

حق دار:(حَق-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- مستحق- حق لرونکے- دَ حق خاوند- حقمن- (م- فارسی)-

حقداري:(حق-دا-ري)اسم- مؤنث- حق لرنه-

حق دق:(حَق-دق)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- اریان دریان- اکه پکه- الق دلق- حق حېران- وار خطا- کچو ګول-(دیر)-

حق دوست:(حَق-دوست)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ حق طرفدار- دَ حق ملګرے- (م- فارسی)-

حق شناس:(حق-شه-ناس)اسم صفت- واحد- حق پېژندونکے- (م- فارسی)-

حق شناسي:(حَق-ش-نا-سي)اسم- مؤنث- دَ حق پېژندنه-

حق ګو:(حَق-ګو)اسم صفت- حق ویونکے- حق ګوی- (م- فارسی)-

حق ګوئي:(حَق-ګو-ئي)اسم- رښتیا وئېنه- حق وئېنه-

حقمن:(حَق-مَن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ حقدار- (م- فارسی)-

حق ناحق:(حَق-نا-حق)متعلق فعل- بې موجبه- وُچ پهٔ وچه- بې دلیله- بې ښې بې بدې - ارو مرو- خوا مخوا-

حقنه:(حُ-قهٔ-نه)اسم- مؤنث- پچکاري کونه- دَ کُنې دَ اړخ نه دَ کلمو صفا کونه-

حقوق:(حُ-قوق)اسم- جمع- مذکر- دَ حق جمع- (م- عربی)-

حقوقي:(حُ-قو-قي)صفت- دَ حق سره منسوب- دَ حق-

حقه:(حِ-قه)اسم- مؤنث- لهٔ لاسه دَ ویشتلو دَ دارو (باردو) کوپی-

حقه:(حَ-قه)صفت- (۱)دَ حق- (۲)قانوني- اصولي- پهٔ ځایُ- (۳)دَ حق مؤنث- (م- عربی)-

حُقه:(حُ-قه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څلور کلنے اوښ- چتر- کواټ- (۲)هغه کنده یا پړغل چې مال دولت پکښې خوندي کولے شي- کوتے- کوتي- دبلے- ډبلے- (۳)چیلم-

حقیر:(حَ-قیر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خوار- ذلیل- زبون- (۲)وړوکے- (۳)بې قیمته- بې قدره- (م- عربی)-

حقیقت:(حَ-قی-قَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ څهٔ څیز اصل- (۲)ریښتیا- جمع حقائق- (م- عربی)-

حقیقتاً:(حَ-قی-قَ-تَن)متعلق فعل- پهٔ رښتیا- واقعي- پهٔ حقیقت- پهٔ حقیقي توګه- (م- عربی)-

حقیقت بین:(حَ-قی-قَت-بین)اسم صفت- واحد- مذکر- حقیقت لیدونکے- دَ حقیقت ژبغ ته رسېدونکے-

حقیقي:(حَ-قی-قي)صفت- (۱)رېښتونے- پهٔ حقه- (۲)دَ خطا ضد- (۳)دَ حکایت ضد- (م- عربی)-

حک:(حَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)توږنه- (۲)کنسته- (۳)سولونه- (م- عربی)-

حکاک:(حَ-کاک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مهر جوړونکے- کنستونکے- (۲)هوښار- زیرک- (م- عربی)-

حکاکي:(حَ-کا-کي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مهر جوړونه- کیندنه-

حکایت:(حِ-کا-یت)اسم- واحد- مذکر- قیصه- سرګزشت- داستان- بیان- (م- عربی)-

حک پک:(حک-پک)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- وګورئ هک پک-

حکلي:(حک-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ پائېکو-

حکم:(حُ-کم)اسم- واحد- مذکر- امر- اېر- فرمان- جمع حکمونه/احکام-

حکم:(حَ-کم)اسم صفت- واحد- مذکر- درېم ګړے- منځه ګړے- منصف- قاضي- درېمان- نیاوی- میانچي- (م- عربی)-

حکم:(حِ-کم)اسم- جمع- مذکر- دَ حکمت جمع- (م- عربی)-

حکماً:(حُک-مَن)متعلق فعل- دَ حکم پهٔ ذریعه- پهٔ حکم-

حکمت:(حِک-مَت)اسم- واحد- مذکر- پوهه- علم- هوښیاري- (م- عربی)-

حکمتي:(حِک-مَ-تي)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- هوښیار- دَ حکمت خاوند- ټګ- چل ولی- (م- عربی)-

حکمران:(حُ-کم-ران)اسم صفت- واحد- مذکر- فرمانروا- بادشاه- حکم چلونکے- (م- فارسی)-

حکمراني:(حُ-کم-را-ني)اسم- واحد- مؤنث- بادشاهي- حکومت- حکم چلونه- اقتدار- (م- فارسی)-

حکمنامه:(حُ-کم-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه حکم چې دَ حاکم لهٔ خوا لیکلے شوے وي- لیکلے حکم- (م- فارسی)-

حکمي:(حُک-مي)صفت/متعلق فعل- (۱)دَ امر- دَ حکم- (۲)جبري- پهٔ زور-

حکمیت:(حَ-کَ-مي-یت)اسم- واحد- مذکر- منځګړتوب- درېم ګړ والے- ثالثي- (م- عربی)-

حکومت:(حُ-کو-مَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)اقتدار- (۲)زور- طاقت- (م- عربی)-

حکومتي:(حُ-کو-مَ-تي)صفت/متعلق فعل- دَ حکومت پهٔ حقله-

حکیم:(حَ-کیم)اسم صفت- واحد- مذکر- پوه- هوښیار- (۲)طبیب- حکمت لرونکے- (م- عربي)-

حکیمانه:(حَ-کي-ما-نه)متعلق فعل- عالمانه- عاقلانه- دَ حکیم پهٔ شان-

حکیمي:(حَ-کي-مي)اسم- واحد- مؤنث- طبابت- دَ یوناني طب پهٔ رڼا کښې دَ مریضانو علاج کونه- دَ حکیم پیشه-

حل:(حل)اسم- واحد- مذکر- ګاڼه- ګڼه- زېور-

حل:(حل)اسم- واحد- مذکر- (۱)نتیجې ته رسېدنه- (۲)اوارېدنه- هوارېدنه- (۳)ویلی کېدنه- (۴)ګرانه چاره اسانونه- معلومونه- (م- عربي)-

حلاج:(حَ-لاج/حَل-لاج)اسم صفت- واحد- مذکر- نداف- پانډېتي- پېنډېتي- نداف- (م- عربي)-

حلاجي:(حَ-لا-جي)اسم- واحد- مؤنث- الاجي- هغه آله دَ کومې پهٔ ذریعه چې دَ مالوچو نه دَ پومبې دانې بېلولے شي یا دَ کنو نه پرې اَبهٔ (رس) وېستلے کېږي-

حلال:(حَ-لال)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱) دَ شرعې مطابق روا- جائز- روا- پاک- دَ حرام ضد- (۲)دَ خوراک جوګه- (م- عربي)-

حلال:(حَ-لال)اسم صفت- واحد- مذکر- پرانستونکے- خلاصونکے- دَ غوټې پرانستونکے- (م- عربي)-

حلال:(حَ-لال)اسم صفت- واحد- مذکر- ذبحه- چې مرې يې غوڅه شي-

حلال خور:(حَ-لال-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- حلالي- چې حلال او پهٔ خپلو متو ګټلے رزق خوري- دَ حرام ضد- مؤنث حلال خوره- جمع حلال خوارهٔ-

حلالول:(حَ-لا-لَ-وَل)مصدر متعدي- روا کول- جائزول- (۲)ذبحه کول-

حلالون:(حَ-لا-لَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ حلالول-

حلالونکے:(حَ-لا-لَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حلالول-

حلالونګ:(حَ-لا-لَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حلالول-

حلالونه:(حَ-لا-لَ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حلالول-

حلالوهٔ:(حَ-لا-لَ-وَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ حلالول-

حلاله:(حَ-لا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حلالکه- ذبحه- قصابي کونه- ونډې- (۲)پهٔ شرعي طریقه پهٔ چاړهٔ چرګې- وغیره ذبحه شوے ځناور- (۳- صفت)دَ حرامه ضد- جمع حلالې-

حلالي:(حَ-لا-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- حلالونے- هغه اولاد چې دَ نر او ښځې دَ شرعي نکاح لهٔ تړلو وروستو پېدا شوے وي- دَ حرامي ضد (۲)صالح- نېک عمله- جمع حلالیان- مؤنث حلالڼه-

حلالېدل:(حَ-لا-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)روا کېدل- روا ګڼل- (۲)ذبحه کېدل-

حلالېدن:(حَ-لا-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ حلالېدل-

حلالېدنګ:(حَ-لا-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حلالېدل-

حلالېدنه:(حَ-لا-لې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حلالېدل-

حلالېدونکے:(حَ-لا-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حلالېدل-

حلالېدهٔ:(حَ-لا-لې-دَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ حلالېدل-

حلاوت:(حَ-لا-وَت)اسم- مؤنث- خوږ والے- خوږښت- شیریني- (م- عربي)-

حلزون:(حَل-زُون)اسم- واحد- مذکر- ببا- ګوګ- دَ سپرلې یو خاص قسم چینجے-

حلف:(حلف)اسم- واحد- مذکر- قسم خوړنه- قسم- سوګند- عهدو پیمان- لوړه- لوو- (م- عربي)-

حلف نامه:(حَلف-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه کاغذ چې پرې حلف لیکلے وي- جمع حلف نامې-

حلفي:(حَل-في)صفت- قسمیه- حلفیه-

حلفیه:(حَل-في-یه)صفت- قسمیه- حلفي- پهٔ قسم سره-

حلق:(حَلق)اسم- واحد- مذکر- تالو- ستونے- مرې- (م- عربي)-

حلق دلق:(حَلق-دلق)اسم صفت- فکرمند- حیران- پرېشان-

حلقوم:(حَل-قوم)اسم- واحد- مذکر- دَ خلې او معدې تر مېنځه دَ پوړۍ نالې- سره غاړه- وچه غاړه- (م- عربي)-

حلقوي:(حَل-قَ-وي)اسم صفت- الغه وله- دَ حلقې- دَ کړۍ-

حلقه:(حَل-قه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کړۍ- الغه- دائره- ماله- چکر- (۲)لومه- (۳)ګروپ- غونډه- ټولګے- جمع حلقې- (م- عربي)-

حلقه بګوش:(حَل-قه-بَ-ګوش)صفت- (۱)هغه غلام چې پهٔ غوږ کښې به يې یوه مخصوصه مندرۍ اچوله- (۲)تابعدار- غلام- فرمانبردار- (م- فارسي)-

حلم:(حَ-لم)اسم- واحد- مذکر- تېزلک- تیر تېزلک-

حلم:(حلم)اسم- واحد- مذکر- زغم- حوصله- همت- بردباري- صبر- نرمي- تحمل-

حلوا:(حَل-وا)اسم- واحد- مؤنث- سوجي یا ناشیشته چې پهٔ غوړیو کښې سره کړے شي- یو شرین خوراک- (۲- صفت)نرم او پوست کار- (۳)اسان کار- چیت پیت شوے- (م- عربي)-

حلوان:(حَل-وان)اسم- واحد- مذکر- چېلوکے- چېلے- (دَ حلان غلط العام)-

حلوائي:(حَل-وا-ئي)اسم صفت- واحد- مذکر- حلوا یا مټائي جوړونکے- روښوال- الوائي- جمع حلوایان-

حلول:(حَ-لَ-وَل)مصدر متعدي- (۱)څهٔ مسئله نتیجې ته رسول- (۲)ویلې کول- حل کول- (افغانستان)-

حلول:(حُ-لول)اسم- (۱)څهٔ ځائې ته ننوتل- داخلېدل- (۲)پېل کېدل- (۳)ښکاره کېدل- رارسېدل- (افغانستان)-

حلون:(حَ-لَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ حلول-

حلونکے:(حَ-لَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حلول-

حلونګ:(حَ-لَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ حلول-

"ی" (ښي-رل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ئ"(پیا-لي)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱۰

حلونه:(حَ-لَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حلول-

حلوهٔ:(حَ-لَ-وهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ حلول-

حليف:(حَ-ليف)اسم صفت- واحد- مذکر- ملګرے- دوست- (م- عربي)-

حليم:(حَ-ليم)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)زغمونکے- د لوئ سينې خاوند- زغمونے- صبرناک- نرم- خوږ- (۲)د الله پاک يو صفتي نوم- (م- عربي)-

حليم:(حَ-ليمَ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم خوراک چې لهٔ اوړو او غوښې نه جوړيږي- اړيسه- (م- عربي)-

حليمي:(حَ-لي-مي)صفت- (۱)حليم سره متعلق- (۲)شفقت- رحمت- مينه-

حليه:(حُل-يه)اسم- شکل- څېره- بشره- (م- عربي)-

حلېدل:(حَ-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)فيصله کېدل- پهٔ نتيجه رسېدل- (۲)ويلي کېدل- (۳)حل کېدل-

حلېدلے:(حَ-لې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ حلېدل-

حلېدن:(حَ-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ حلېدل-

حلېدنګ:(حَ-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ حلېدل-

حلېدنه:(حَ-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ حلېدل-

حلېدونکے:(حَ-لې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حلېدل-

حلېدهٔ:(حَ-لې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ حلېدل-

حماست:(حَ-ما-سَت)اسم- واحد- مذکر- زړورتيا- دلاوري- شجاعت- (م- عربي)-

حماسي:(حَ-ما-سي)صفت/متعلق فعل- د زړورتوب- د شجاعت- د بهادرئ- (م- عربي)-

حماقت:(حِ-ما-قت)اسم- واحد- مذکر- بې عقلي- ساده توب- کم عقلي- ناپوهي- (م- عربي)-

حمال:(حَ-مال)اسم صفت- واحد- مذکر- پنډي- بار وړونکے- جوالي- مزدور- (م- عربي)-

حمام:(حَ-مام)اسم- واحد- مذکر- د لمبلو ځائ- هغه ځائ چې د لمبلو د پاره پکښې تودې او سړې اُبهٔ وی- (م- عربي)-

حمامي:(حَ-ما-مي)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ حمام کښې د خلقو د جامو او نورو څيزونو څوکيدار- د حمام مالک-

حمايت:(حِ-ما-يَت)اسم- واحد- مذکر- ننګه- دفاع کونه- ساتنه- د چا پهٔ حق کښې خبره کونه- مرسته- (م- عربي)-

حمايتي:(حِ-ما-يه-تي)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- حمايت کونکے- مرستيال- مرسته کونکے- (م- عربي)-

حمائل:(حَ-ما-ئل)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ غاړه کښې د اچولو شے- اوږي- د زنانو د غاړې يو کالے- (۲)وړوکے قرآن مجيد چې پهٔ سفر کښې پهٔ غاړه کښې اوبزاند وی- پهٔ غاړه کړے شوے تعويذ- (م- عربي)-

حمايه:(حِ-ما-يه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ حمايت-

حمد:(حَمد)اسم- واحد- مذکر- ستائينه- صفت- د الله تعالیٰ ثنا صفت بيانونه- (م- عربي)-

حمل:(حَ-مَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)بلاربوالے- (۲)بار- بوج- (م- عربي)-

حمل:(حَ-مَل)اسم- واحد- مذکر- د هجري شمسي کال وړومبۍ مياشت- د ۲۱ مارچ نه تر ۲۰ اپريل پورې- د حوت او ثور تر مېنځ مياشت- وَرے- (م- عربي)-

حمل ونقل:(حَم-لو-نَ-قَل)اسم- واحد- مذکر- د تګ را تګ وسيلې- ټرانسپورټ-

حمله:(حَم-له)اسم- واحد- مؤنث- يرغل- چپاؤ- بريد- غرځنګ- اپه- تعرض-

حميت:(حَ-مي-يَت)اسم- واحد- مذکر- غيرت- ننګ- خوانمردي- مړانه-

حميت مند:(حَ-مي-يَت-مَند)اسم صفت- واحد- مذکر- غيرتمند- ننګيالے-

حميد:(حَ-ميد)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غوره- (۲)ستائيلے- مؤنث حميده-

حميم:(حَ-ميم)صفت- (۱)ګرم- تود- (۲)دوست- (م- عربي)-

حمېل:(حَ-مېل)اسم- واحد- مذکر- امېل- امبېل- هار- جمع حمېلونه- (م- عربي)-

حنا:(حِ-نا)اسم- واحد- مؤنث- نکريزې- (م- عربي)-

حنائي:(حِ-نا-ئي)صفت- پهٔ نکريزو لړلې- پهٔ نکريزو سرې- زيړ بخن سُور- د نکريزو سره متعلق-

حنبلي:(حَم-بَ-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- د امام حنبل صاحب پيروکار-

حنجره:(حَن-جَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- مرۍ- کومے- حلق- غاړه- (م- عربي)-

حنظل:(حَن-ظَل)اسم- واحد- مذکر- کاکوړه- مرغونې- مېغونې- نباتاتي نوم-کوکومس کولو سينتهس (CUCUMIS COLOCYNTHIS)-

حنفي:(حَ-نَ-في)صفت- د امام ابوحنيفهٔ صاحب پېروکار- د هغوئ مسلک- (م- عربي)-

حنيف:(حَ-نيف)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ خپله عقيده ټينګ ولاړ- (م- عربي)-

حوا:(حَ-وا)اسم- واحد- مؤنث- د حضرت آدم عليه السلام بی بی او د ټولې دنيا د انسانانو مور- (م- عربي)-

حوادث:(حَ-وا-دِث)اسم- جمع- مذکر- د حادثې جمع- (م- عربي)-

حواري:(حَ-وا-ري)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوږ ملګرے- (۲)د عيسیٰ عليه السلام د دولسو ملګرو نه يو ملګرے- (۳)شاګرد- طالب- (م- عربي)-

حواريون:(حَ-وا-ري-يون)اسم- جمع- مذکر- د حواري جمع- وګورئ حواري-

حواس:(حَ-واس)اسم- جمع- مذکر- د حس او ادراک قوت- د حاسه جمع- (م- عربي)-

حواسي:(حَ-وا-سي)صفت- د حواس- د حواس سره منسوب-

زبر (څ-بهٔ-ره)، زورکے (شل)، پېښ (نو-کا-ره)، زبر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ه (ز-ړه)، هٔ (ړو-ببې-دهٔ)

حواشي:(حَ-وا-شي)اسم- جمع- مؤنث- حاشې- غاړې- څنډې- دَ کتاب دَ صفې غاړه- دَ حاشيه جمع- (م- عربی)-

حوالات:(حَ-وا-لاتَ)اسم- واحد- مذکر- جېل يا تانه کښې هغه ځائې چې ملزمان دَ مقدمې دَ تفتيش پهٔ دوران کښې پکښې ساتلے شي- قېد- بند-

حوالاتی:(حَ-وا-لا-تي)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- هغه څوک چې پهٔ حوالات کښې وی-

حواله:(حَ-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سپارنه- سپُرد- (۲)پته- درک- دليل- (۲)پهٔ ذمه- پهٔ غاړه-

حوت:(حوت)اسم- واحد- مذکر- (۱)مهے- کب- (۲)دَ هجری شمسی کال دولسمه مياشت- دَ دلوې او حمل تر مېنځ مياشت- (م- عربی)-

حوره:(حَو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ جنت ښائسته مخلوق- (۲-صفت)ښائسته- ډېره ښکلې- دَ ښکلا ښاپېرى- (م- عربی)-

حوړ:(حَوړ)صفت- ښکته- کوز- لر- څوړ- وېخ کښې-

حوزه:(حَو-زه)اسم- واحد- مؤنث- سيمه- علاقه- ناحيه- ولکه-

حوصله:(حَو-صَ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)صبر- زغم- همت- (۲)ججوره- ججيره- جاغور- (م- عربی)-

حوض:(حَوضَ)اسم- واحد- مذکر- تلاؤ- ډنډ- تالاؤ-

حوضچه:(حَوض-چه)اسمِ تصغير- واحد- مؤنث- دَ حوض اسمِ تصغير- تلاؤګے- وړوکے تلاؤ-

حول:(حَ-وَل)اسم- واحد- مذکر- چپے کېدنه- چپک توب- چپک والے- (افغانستان)-

حول:(حَول)اسم- واحد- مذکر- (۱)بيرته راګرځېدنه- (۲)وَس- (۳)کېر چاپېر- (۲)کال-

حوېلی:(حَ-وې-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بنګله- دَ وَسېدو ځائې- انګڼ- محل- کوټی-

حی:(حیّ)صفت- (۱)دَ الله تعالٰی يو صفتی نوم- (۲)ژوندے- (م- عربی)-

حيا:(حَ-يا)اسم- واحد- مؤنث- شرم- پرده- وايه- ادره- ستر- غېرت- (م- عربی)-

حيا بوټے:(حَ-يا-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- شرم بوټے- شرمنده بوټے- يو بوټے چې پهٔ ګتو وړلو مړاوے کيږی- نباتاتی نوم ميموسانېټنز يا پيوډيکا (MIMOSANATANS OR PUDICA)-

حيات:(حَ-ياتَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژوند- ژواک- ژوندون- دَ مرګ ضد- (م- عربی)-

حياتګے:(حَ-يات-ګے)اسمِ تصغير- دَ حيات اسمِ تصغير- ژوند-

حياتی:(حَ-يا-تي)اسمِ صفت- دَ ژوند سره تړلے- دَ حيات سره منسوب-

حيادار:(حَ-يا-دار)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- حيا ناک- غېرتی- چې پهٔ چا کښې حيا، لحاظ او شرم وی- مؤنث حيداره-

حياناک:(حَ-يا-ناک)اسم صفت- وګورئ حيادار-

حيز:(حيز)اسم صفت- واحد- مذکر- ايزک- ايز- هجړا- ايجړا- (م- عربی)-

حيضه:(حَ-يۀ-ضه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې دَ حيض پهٔ حالت کښې وی- (م- عربی)-

حيله:(حی-له)اسم- واحد- مؤنث- چل- مکر- فرېب- (م- عربی)-

حيله باز:(حی-له-بازَ)صفت- واحد- مذکر- حيله کونکے- مکار- چلباز- ټګ- فرېبی- حيله ګر- حيله ناک- (م- عربی)-

حيله بازی:(حی-له-با-زي)اسم- واحد- مؤنث- مکاری- چلبازی- ټګی- مکر- فرېب- دَ حيله باز پېشه- (م- عربی)-

حيله ګر:(حی-له-ګر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ حيله باز-

حيله ناک:(حی-له-ناکَ)صفت- واحد- مذکر- وګورئ حيله باز-

حيوی:(حَ-يه-وی)صفت- (۱)دَ ژوند پهٔ حقله- دَ ژوند- (۲)ژوندے-

حيه:(حَ-يه)اسم- واحد- مؤنث- ژوندی- (م- عربی)-

حې:(حې)دَ "ح" تلفظ-

حېث:(حېثَ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځائې- مکان- (۲)جهت- سبب- علت- کبله- (۲)نظر- اړخ- پلو- نقطه نظر- (م- عربی)-

حېثيت:(حَے-ثی-يَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)وضع- جهت- (۲)اعتبار- اتبار- ابرو- شان- (م- عربی)-

حېدر:(حے-دَر)اسم- واحد- مذکر- زمرے- امزرے- منزرے- سائنسی نوم پېنتېرا پارډس (PANTHERA PARDUS)- (م- عربی)-

حېران:(حَے-ران)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اريان- حريان- هک پک- پرېشان- سرګردان- (۲)بې وزله- غريب-

حېرانتيا:(حَے-ران-تيا)اسم- مؤنث- دَ حېرانېدو حالت- حېرت- تعجب- حېرانی-

حېرانی:(حَے-را-ني)اسم- مؤنث- وګورئ حېرانتيا-

حېرانول:(حَے-را-نَ-وَل)مصدرِ متعدی- اريانول- هک پک کول- پهٔ تعجب کښې اچول- پرېشانه کول- سرګردانه کول-

حېرانون:(حَے-را-نَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانول-

حېرانونکے:(حَے-را-نَ-وَن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ حېرانول-

حېرانونګ:(حَے-را-نَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانول-

حېرانونه:(حَے-را-نَ-وَ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانول-

حېرانوهٔ:(حَے-را-نَ-وهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ حېرانول-

حېرانېدل:(حَے-را-نې-دَل)مصدرِ لازم- اريانېدل- حريانېدل- هک پک کېدل- پهٔ تعجب کښې پربوتل- پرېشانه کېدل- سرګردانه کېدل-

حېرانېدنه:(حَے-را-نې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانېدل-

حېرانېدنګ:(حَے-را-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانېدل-

حېرانېدنه:(حَے-را-نې-دَ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ حېرانېدل-

حېرانېدونکے:(حَے-را-نې-دَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ

ئ" (ښی-زل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پيا-لي)، ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

حېرانېدل-

حېرانېدهٔ:(حَـے-را-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دٔ ماضي استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ حېرانېدل-

حېرت:(حَـے-رَت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ حېرانتیا- (م- عربی)-

حېض:(حېضْ)اسم- واحد- مذکر- دٔ ښځو میاشیتنئ ناروغي- جامې- دٔ ښځو لهٔ رحم سره دٔ وینو جاری کېدنه- (م- عربی)-

حېف:(حَېفْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بې انصافي- ظلم- تېرے- ستم- تجاوز- (۲)اُف- افسوس- ارمان- (م- عربی)-

حېوان:(حَـے-وانْ)اسم- واحد- مذکر- څاروے- ځناور- ښنګر- (م- عربی)-

حېوان توب:(حَـے-وانْ-توبْ)اسم- مذکر- ښنګر توب- بې سرېتوب- دٔ ځناورو کارونه کول- حېوانیت- بد تمیزی- وحشت- وحشي توب-

حېوان شنـاس:(حَـے-وانْ-ش-نـاسْ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دٔ څارږو پېژندونکے- زوالوجسټ-

حېوان شنـاسي:(حَـے-وانْ-ش-نـا-سي)اسم- مؤنث- زوالـوجي- دٔ ځناورو دٔ پېژندګلو علم-

حېوان مطلق:(حَـے-وا-نِ-مط-لق)اسم- واحد- مذکر- هغه حېوان چې شعور، پوهه، عقل او دٔ وېنا طاقت نهٔ لری- (م- عربی)-

حېوان ناطق:(حَـے-وا-نِ-نا-طق)اسم- واحد- مذکر- انسان- هغه حېوان چې دٔ وېنا او اظهار قوت لری- (م- عربی)-

حېواني:(حَـے-وا-ني)صفت- دٔ حېوان- دٔ حېوان پهٔ حقله- نفساني-

حېوانیت:(حَـے-وا-نی-يَت)اسمِ صفت- وګورئ حېوان توب-

حے:(حَـے)صفت- ژوندے- ژوے-

حے حے:(حَـے-حَـے)اسم- واحد- مذکر- دٔ ماشومانو پهٔ ژبه (خر)-

---

غ:(غې)حرف- واحد- مؤنث- دَ عربي اووم، دَ فارسي نهم، دَ اردو لسم، او دَ پښتو ژبې دَ حروف تهجي دولسم حرف چې دَ ابجدو پهٔ حساب ئ قيمت شپږ سوه دے-

خا:(خا)اسم- واحد- مؤنث- سخا ږنه- مُردار ږنه- (افغانستان)-

خاپ:(خاپّ)اسم- واحد- مذکر- خپ- خراپ- نښه- چاپ- داغ- ټاپه- مُهر- علامه- نښانه- جمع خاپونه-

خاپره:(خا-پهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- خپره- پنجه- جمع خاپرې-

خاپوڅې:(خا-پو-څې)اسم- جمع- مؤنث- خرپوڅې- خاړپوڅې- خپوړې- خالپوڅې-

خاپوړت:(خا-پو-ړت)اسم- واحد- مذکر- مغه ځاروے چې ښېته ئ دَ تلو پهٔ وخت کښې پهٔ زمکه لګی- مؤنث خاپوړته- جمع مؤنث خاپوړتې-

خاپوړن:(خا-پو-ړن)اسم صفت- واحد- مذکر- شلم ښېتے- پهٔ خرپوڅو تلونکے- ډېر ماشوم چې لاګرځېدے نهٔ شي- مؤنث خاپوړنه-

خاپوړي:(خا-پو-ړي)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ خاپوڅې-

خاپے:(خا-پے)اسم- واحد- مذکر- داغ- نقش- خاپ- جمع خاپي-

خاتم:(خا-تم)اسم صفت/فاعل- واحد- مذکر- ختمونکے- آخری کونکے- (م- عربي)-

خاتم:(خا-تَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)مُهر- ګُتمه- (۲)آخري- پایٔ- (م- عربي)-

خاتم الانبيا:(خا-ت-مُل-ام-بي-یا)صفت- دَ ټولو نبيانو دَ نبوت ختمونکے- محمد صلیٰ الله علیه وسلم- (م- عربي)-

خاتمه:(خا-ت-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)انجام- اختتام- (۲)مرګ- (۳)دَ کتاب مغه عبارت چې کتاب پرې ختميږي- جمع خاتمې-

خاتوري:(خا-تو-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- داتوره- دالتوره- دمتوره- بربګ- نباتاتي نوم وګورئ داتوره-

خاتورے:(خا-تو-رے)اسم- واحد- مذکر- شتالو- شلتالو- شفتالو- شوتالو- دَ نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ شلتالو-

خاتون:(خا-تُون)اسم- واحد- مؤنث- بی بی- بېګم- جمع خواتين- (م- ترکي)-

خاتهٔ:(خا-تهٔ)اسم- دَ ختل مصدر نه اسم او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ختل-

خاتهٔ:(خا-تهٔ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کتابچې خطونه يا کرښې- (۲)پراګ- (افغانستان)-

خاتهٔ پربواتهٔ:(خا-تهٔ-پري-وا-تهٔ)اسم مرکب- (۱)لاندې باندې- لوړې ژورې- (۲)نمرخاتهٔ او نمرپربواتهٔ-

خاتيز:(خا-تيز)اسم- مذکر- نمرخاتهٔ دَ نمر دَ راختلو ځایٔ- (افغانستان)-

خاټو:(خا-ټو)اسم- خندا- ټوقې- ټقالې-

خاټول:(خا-ټول)اسم- واحد- مذکر- خاټولے- ګانټول- خنټول- غاټول- خانټول- غنټول- شمنروز- دَ لاله ګل- دَ للی اے شس (LILIACEOUS) دَ نوع غټې لرونکے ګل او دَ مغهٔ بوټے-

خاټولے:(خا-ټو-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خاټول-

خاچوپوچ:(خا-چو-پوچ)اسم- (۱)خاشي پاشي- خسبې- (۲)بېکاره او فضول ځيزونه- بې فائدې ځيزونه- (افغانستان)-

خاچوڼے:(خا-چو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- بلبله- بلبل- چوڼے- عندليب- مؤنث خاچوڼې- (افغانستان)-

خاچې:(خا-چې)اسم- مذکر- موشې- کچې- ګڼې- لپاټکې- (افغانستان)-

خادم:(خا-دم)اسم- واحد- مذکر- خدمتګار- نوکر- خدمت کونکے- جمع خادمان- مؤنث خادمه- (م- عربي)-

خادم توب:(خا-دم-توبّ)اسم- دَ خادم کار- خدمت-

خادمه:(خا-د-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ خادم مؤنث- وګورئ خادم- جمع مؤنث خادمې-

خادمه:(خا-دَ-مه)اسم- واحد- مؤنث- کربوړے- غاروه- غارندونے- خادمې- دَ کربوړې يا سمسرې پهٔ شان يوه خزنده شلندکوهے- شلوټه-

خادمې:(خا-دهٔ-مې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ خادمه-

خاده:(خا-ده)اسم- واحد- مؤنث- وړوده ګاګه- وړه لهړے- وړه او نرے لرګے-

خادے:(خا-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ دېوال پهٔ سر دَ پټې نه ګېر چاپېره دَ غنو شپول- سرخار-

خار:(خار)اسم- واحد- مذکر- (۱)غنه- ازغے- (۲)رقيب- (شاعري)- جمع خارونه- (م- فارسي)-

خار:(خار)اسم- واحد- مذکر- ويره- شرمېدنه- پيکه کېدنه- (کېدل- جوړل مصدرونه)-

خارا:(خا-را)اسم- مؤنث- (۱)يو قسم پخواني ريښمينه کپړه- (۲)صفت- کلکه تيره- سخت کاڼے-

خارانے:(خا-را-نے)اسم- مذکر- دَ منی باد- دَ سوېل لهٔ خوا الوتونکے باد-

خارپوڅه:(خار-پو-څه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خاړپوڅې-

خارج:(خا-رج)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وېستلے- وېستے- بهر- وتے- وکښلے- ورچينے- (۲)بهرملک (افغانستان)(م- عربي)-

خارجول:(خا-ر-ج-وَل)مصدر متعدي- (۱)وېستل- شړل- لرې کول- کټ کول- (۲)نامنظورول- (۳)بهر کول-

خارجون:(خا-ر-ج-ون)حاصل مصدر- وګورئ خارجول-

خارجونکے:(خا-ر-ج-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خارجونکي- مؤنث خارجونکې- وګورئ خارجول-

خارجونګ:(خا-ر-ج-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خارجول-

خارجونه:(خا-ر-ج-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خارجول-

خارجوهٔ:(خا-ر-ج-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خارجول-

خارجه:(خا-ر-جه)صفت- بهرنے- دَ بهر- خارجي- دَ داخل ضد-

ې (خې-رل)، ي (مې-ره-ول)، ی (پيا-لې)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

خارجه:(خا-ر-جه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- دَ خارج مؤنث- وګورئ خارج-
خارجي:(خا-ر-جي)صفت- (۱)وګورئ خارجه- (۲)بې ايمانه- دَ مسلمانو هغه فرقه چې حضرت على عليه السلام خليفه نهٔ منى-
خارجېدل:(خا-ر-جې-دل)مصدرِ لازم- وېستلے کېدل- شړلے کېدل- لرې کېدل-
خارجېدن:(خا-ر-جې-دن) حاصلِ مصدر- وګورئ خارجېدل-
خارجېدنګ:(خا-ر-جې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خارجېدل-
خارجېدنه:(خا-ر-جې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خارجېدل-
خارجېدونکے:(خا-ر-جې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خارجېدونکی- مؤنث خارجېدونکې- وګورئ خارجېدل-
خارجېدهٔ:(خا-ر-جې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خارجېدل-
خارخسک:(خار-خ-سک)اسم- مذکر- يو بوټے چې پهٔ دېسى طب کښې دَ دوا پهٔ توګه استعمالېږى- اغزکے- مالکنډى- سپل- چښے- نباتاتى نوم اسپېرېکس ګرېسى لس (ASPARIGUS GRACILIS)-
خارخوټی:(خار-خو-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ګرداب- غلى- ول- خارخوړى- غرندے-
خارخور:(خار-خور)اسمِ صفت- تبل خور- شرمېدونکے- وېره کونکے-
خارخوړی:(خار-خو-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وګورئ خارخوټی- (۲)وړې وړې کندې- (۲)پټ غار- پټه کنده- نامعلوم ځاې-
خاردار:(خار-دار)صفت- مذکر- ازغن- ازغى لرونکے- اغزين- ازغين- اغزينک- مؤنث خارداره- جمع مؤنث خاردارې-
خاړے:(خا-ړ-ړے)اسم- مستې- چکه- پئ- ماستهٔ- متره- دَ پيو وړان حالت کښې جوړ شوى غنډان-
خارښ:(خا-رښ)اسم- مذکر- (۱)خارښت- تخور- ګرېدنه- پم- کهه- (۲)عادت-
خارښت:(خا-رښت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خارښ-
خارښتمن:(خا-رښت-من)صفت- وګورئ خارښتى-
خارښتول:(خا-رښ-ت-ول)مصدرِ متعدى- تيخورول- ګرول-
خارښتون:(خا-رښ-ت-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خارښتول-
خارښتونکے:(خا-رښ-ت-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خارښتونکی- مؤنث خارښتونکې- وګورئ خارښتول-
خارښتونګ:(خا-رښ-ت-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خارښتول-
خارښتونه:(خا-رښ-ت-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر-، تيخورول- ګرول-
خارښتوهٔ:(خا-رښ-ت-وهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خارښتول-
خارښتى:(خا-رښ-تى)صفت- (۱)خارښتى- دَ خارښ پهٔ مرض بيمار- پمى- (۲)وران کارے- ټګ لاسے- بداخلاقه- شرير- بدعمله- علتى- (۲)عادى- (۴)مفعول- کنى-

خاربنتېدل:(خا-رښ-تې-دل)مصدرِ لازم- تيخورېدل- ګرېدل-
خارښتېدن:(خا-رښ-تې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خارښتېدل-
خارښتېدنګ:(خا-رښ-تې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خارښتېدل-
خارښتېدنه:(خا-رښ-تې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خارښتېدل-
خارښتېدونکے:(خا-رښ-تې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خارښتېدونکی- مؤنث خارښتېدونکې- وګورئ خارښتېدل-
خارښتېدهٔ:(خا-رښ-تې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خارښتېدل-
خارق العاده:(خا-رِ-قل-عا-ده)اسم- (۱)دَ عادت مخالف کار- حېرانونکے کار- معجزه- کرامت- (م- عربى)-
خارک:(خا-رک)اسم- واحد- مذکر- (۱)وړه غنه- وړوکے ازغے- (۲)زيړه وچه شوې کجوره- (۳)دَ منداڼو يا کاڼى چوکاټ- (افغانستان)-
خارو:(خا-رو)اسم- واحد- مذکر- دَ چرګ دَ پنجې دَ پاسه يو غټ ازغے چې چرګ پرې دَ خان حفاظت کوى- جمع خاروګان-
خارو:(خا-رو)اسم- واحد- مذکر- خرېړ- دَ مارغهٔ خارو- دَ خنې مارغانو پهٔ لکه لمى يا لکه منى يو ازغے شان پېدا شى چې دَ يو مرض علامه ګڼلے شى-
خاره:(خا-ره)اسم- مؤنث- شاړه زمکه- شړه زمکه- ډاګ-
خاړپوڅې:(خاړ-پو-څې)اسم- جمع- مؤنث- خړپوڅې- خاپوړې-
خاړمور:(خاړ-مور)اسم- واحد- مذکر- وګورئ تغندے-
خاړيګز:(خا-ړي-ګز)اسم- واحد- مذکر- بېدامه- بدمه- تور دُوند- سخته سيلى-
خازن:(خا-زن)اسم- واحد- مذکر- خزانچى- دَ خزانې ساتونکے- مؤنث خازنه- جمع خازنان- (م- عربى)-
خازه:(خا-زه)صفت- مړاوے- دَ تازه ضد-
خازه:(خا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لکړه- خاده- خده- (۲)دَ څيز ډېر کم مقدار- (۲)دَ قبر خزه- جمع خازې-
خازه توب:(خا-زه-توب)اسم- مړاوې والے- شيته والے- جينګر والے- جينګرتوب- دَ تازه والى ضد- (افغانستان)-
خازه والے:(خا-زه-وا-لے)اسم- وګورئ خازه توب-
خاړخاړ:(خاړ-خاړ)اسم- جمع- مذکر- دَ پوست تخم- قاشقاش- خاشخاش- دَ ګلاشيم (GLAUCIUM) دَ خېل يو بوټے-
خاسکى:(خا-س-کى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خسکے- بند- هغه غوښه چې پهٔ مېږوکى پورې وى-
خاسه:(خا-سه)اسم- مؤنث- وګورئ خاصه-
خاشاپنا:(خا-شا-په-نا)صفت- بخيل- ډېر کنجوس- وړ سترګے-
خاشاک:(خا-شاک)اسم- واحد- مذکر- (۱)خخلې- خاشې- خس- خسنې- خلې پلې- (۲)خشپوشې- خشاک- دَ سوزولو لرګى وغېره- جمع خاشاکونه-

زبر (خ-بهٔ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ه (ز-ړه)، هٔ (پو-بې-دهٔ)

(م- عربی)-

خاشاکښ:(خا-شا-کښ)اسم صفت- واحد جمع- مذکر- دَ خاشې وېستو ماهر-

خشخاش:(خاش-خاش)اسم- جمع- مذکر- (۱)خشخاش- قاشقاش- خاږخاړ- دَ کوکنارو دانې- نباتاتی نوم دَ ګلاشیم (GLAUCIUM) دَ خپل يو بوټے- (۲)دَ رتې څلورشپېتمه (۶۴) حصه- (م- فارسی)-

خاشکیر:(خاش-کیر)اسم- واحد- مذکر- دَ خاکشیر عامیانه شکل- وګورئ خاکشیر-

خاشنۀ:(خاش-نۀ)اسم- جمع- مذکر- وګورئ خاشنړۀ-

خاشنړۀ:(خاش-نړه)اسم- جمع- مذکر- (۱)خرشنه- خاشنۀ- خرشنۀ- خرشنې- خرسین- لد- دَ خر لد- دَ اس، خر او قچر وغېره ګندګی- (۲)دَ لرې مُرداري-

خاشه:(خا-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خځله- (۲)دَ څۀ څيز ډېر کم مقدار- (۳)خرسک- خسک- دَ ماشومانو يو قسم بيماری- (۴)دَ غوښې ټوټه يا پوټے- جمع خاشې- (م- عربی)-

خاشه پنا:(خا-شه-پَ-نا)صفت- مذکر- وړسترګے- ووړے اروا لرونکے- خاشاپنا-

خاشه خاشه:(خا-شه-خا-شه)اسم صفت- واحد- مؤنث- پاره پاره- رېزه رېزه- پوټے پوټے- ټوټې ټوټې- جمع خاشې خاشې-

خاشه کښ:(خا-شه-کَښ)اسم- واحد- مذکر- دَ خسک ياخر سک طبيب- (افغانستان)-

خاشی ماشی:(خا-شی-ما-شی)اسم مرکب- مذکر- خسنی- خځلې- سخا څيزونه- ګند بلا- حقير او سپک څيزونه-

خاشې بُشې:(خا-شې-بُ-شې)اسم مرکب- مؤنث- خځلې مځلې- خاورې خځلې- خاورې خيرې- خل پزاله-

خاښه:(خا-ښه)اسم- مؤنث- خيرے- ربګ- جمع خاښې-

خاص:(خاص)صفت- دَ عام ضد- مخصوص- خصوصی- ټاکلے شوے- اهم- غوره- مؤنث خاصه- (م- عربی)-

خاصتاً:(خا-ص-تن)متعلق فعل- پۀ خاص ډول- پۀ خاصه توګه-

خاصره:(خا-ص-ره)اسم- واحد- مؤنث- تشے- تسے- جمع خاصرې- (م- عربی)-

خاصمانه:(خا-ص-ما-نه)متعلق فعل- پۀ دشمنۍ- پۀ بدۍ- (م- عربی- فارسی)-

خاص مخلص:(خاص-مُخ-لِص)اسم صفت- مرکب- خالص مخلص- صرف او صرف- تش-

خاصه:(خا-صه)اسم صفت- دَ سان نه لږه نرۍ او ارزان بيعه کپړه- ململ- خاسه- جمع خاصې-

خاصه:(خا-صه)اسم صفت- دَ خاص مؤنث- مخصوصه- ټاکلې- غوره- اهمه- خانګړې-

خاصه:(خا-صه)اسم- مؤنث- خاصيت- عادت- خوئ- (م- عربی)-

خاصه دار:(خا-صه-دار)اسم- واحد- مذکر- دَ پاکستان قبائلی علاقو کښې دَ بې قاعده عسکری تنظيم فرد يا افراد چې دَ قبائلی ملکانو پۀ خوښه برتی کيږی- (جمع خاصه دار او خاصه داران دواړه)-

خاصه داری:(خا-صه-دا-ری)اسم- (۱)دَ خاصه داری کار- (۲)بېګار-

خاصيت:(خا-صی-يَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)اثر- تاثير- (۲)عادت- خوئ- خاصه- (۳)صفت- جمع خاصيتونه-

خاضع:(خا-ضع)اسم صفت- خاکسار- بې کبره- بې غروره- متواضع- تواضع کونکے-

خاطر:(خا-طر)اسم- (۱)لحاظ- مخ لحاظ- (۲)تواضع- (۳)وجه- (۴)زړۀ- ضمير- (۵)ياد- فکر- (م- عربی)-

خاطر تيز:(خا-طر-تيز) اسم صفت- واحد- مذکر- مغرور- متکبر-

خاطر تيزی:(خا-طر-تې-زی)اسم- مؤنث- تکبر-

خاطر جمع:(خا-طر-جَ-مع)صفت- مطمئن- ډاډه- بېغمه- پوره- (م- عربی- فارسی)-

خاطر جمعی:(خا-طر-جَم-عی)اسم- تسلی- ډاډګيرنه- (م- عربی- فارسی)-

خاطرداری:(خا-طر-دا-ری)اسم- دَ زړۀ دَ ساتلو کار- دَ بل زړۀ ساتنه- تواضع- دار مدار- مېلمستيا- (م- فارسی)-

خاطر مدار:(خا-طر-مَ-دار)اسم- (۱)مدار- خاطر- ټيټه پيټه- خدمت او عزت- (۲)مرکلے- پخپر راغلے- بره ګوره- ستړی مشې- ګوره بوره- (م- عربی- فارسی)-

خاطره:(خا-طِ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ياداشت- ياد- (۲)يادګار- جمع خاطرې- (م- عربی)-

خاک:(خاک)اسم- مذکر- (۱)خاوره- (۲)زمکه- (م- فارسی)-

خاکبوسی:(خاک-بو-سی)اسم- مؤنث- خاورې ښکلونه- قدم بوسی- عزت احترام- (م- فارسی)-

خاکسار:(خاک-سار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بې کبره- بې غروره- (اصل معنی دَ خاورو پۀ شان) (م- فارسی)-

خاکساری:(خاک-سا-ری)اسم- مؤنث- بې کبری- تواضع- (م- فارسی)-

خاکستردانی:(خا-کس-تَر-دا-نی)اسم- مؤنث- ايرېنی- ايش ټرے- هغه لوښے چې دَ سګرټ ايره پکښې اچولے کيږی- (م- فارسی)-

خاکسترک:(خا-کس-تَ-رَک)اسم- مذکر- دَ انګورو يو قسم بيماری- (افغانستان)-

خاک شوره:(خاک-شو-ره)اسم- مؤنث- سره- ښنګل- (م- فارسی)-

خاکشير:(خاک- شير)اسم- خاشکير يو خودرو بوټے چې عموماً دَ غرونو لمن، باغونو او صحراګانو کښې رازرغنيږی- چې نرې پاڼې او پلنې پاڼې او زيړ رنګ واړۀ ګلونه نيسی او دَ قاشقاشو پۀ شان نرې نرې دانې لری چې پۀ يونانی طب کښې پکارولے شی- جينجر- جنجڼ- پشولمے-

نباتاتی نوم د ابرس پرېکټوریس تخم (ABRUS PRECATORIUS)-

خاکښوری:(خاک-ښو-ری)اسم- غریبی- کسب- کار- خاکشورانی-

خاکلے:(خا-کۀ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بدرنګ- بدشکله- د ښاغلے ضد-

خاکنا:(خاک-نا)اسم- مؤنث- خاکنانے- د زمکې نری او وړده ټوکړه چې د دوؤ اُبو په منځ کښې وی-

خاکنانے:(خاک-نا-نے)اسم- واحد- مذکر- وګوری: خاکنا-

خاکه:(خا-که)اسم- (۱)نقشه- تصویر- کچه نقشه- (۲)د وریږو مېده- د کاڼی مېده- (۳)د غمی ربزه- (۴)بې کاره څیز- (۵)د نانبایانو د تختې اوړۀ- (۶)د ادب یو نثری صنف- هغه تکل چې د چا په کردار لیکلے شوے وی-

خاکی:(خا-کي)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خاورې رنګے- خړ- ایره رنګے- د خړ رنګ واله- (۲)له خاورو جوړ- انسان- (۳)هغه ها چې چرګه ې بغېر چرګ سره له جوړه کېدو اچوی-

خاکی:(خا-کي)اسم- کډی- ژور خایٔ- ژوره زمکه- (افغانستان)-

خاکے:(خا-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بې لحده قبر- هغه قبر چې لحد ېٔ نۀ وی- جمع خاکی- (۲)کنده- ړوغل- (۳)د ماشومانو یو قسم لوبه-

خاګاه:(خا-ګاه)اسم- بربادونه- ورکونه- تباه کونه-

خاګلے:(خا-ګۀ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- ښاغلے- اغلے- درونډ- (افغانستان)-

خاګینه:(خا-ګي-نه)اسم- واحد- مؤنث- د اګې پخولو د طریقو نه یوه طریقه- (افغانستان)-

خال:(خال)اسم- واحد- مذکر- (۱)خاپ- داغ- ټکے- (۲)د جواری په دانه هغه پوټکے لرونکے اړخ چې د تاوان کور ګڼلے شی- (۳)د چیچک د پاره لګولے شوې ټیکه- جمع خالونه-

خالپوځې:(خال-پو-ځې)اسم- جمع- مؤنث- وګوری: خاړپوځې-

خال چینی:(خال-چی-نی)اسم- مذکر- د انګورو یو قسم چې په قندهار کښې پېدا کیږی-

خال خال:(خال-خال)اسم صفت- مرکب- (۱)خاپ خاپ- داغ داغ- ټکی ټکی- (۲)لږ لږ- کم کم- (۳)ځنې ځنې-

خالدار:(خال-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- برګ بروګ- برګے- خالونه لرونکے- مؤنث خالداره-

خالص:(خا-لص)متعلق فعل/اسم صفت- مذکر- پاک - سوچه- صفا- (م- عربی)-

خالصانه:(خا-ل-صا-نه)متعلق فعل- (۱)په خاص ډول- په خاصه توګه- (۲)په صفا زړۀ- په پاک زړۀ-

خالص مخلص:(خا-لص-مُخ-لص)اسم صفت- مرکب- وګوری: خاص مخلص-

خالصه:(خا-ل-صه)اسم صفت- مؤنث- (۱)سوچه- صفا- پاکه- خاصه- (۲)دولتی شتمنی-

خالق:(خا-لق)اسم صفت- مذکر- (۱)پېدا کونکے- د الله پاک له صفتونو نه یو صفت-

خالک:(خا-لک)اسم- واحد- مذکر- کرته- قمیص-

خالکوبی:(خال-کو-بی)اسم- خال وهنه- رګونه وهنه- د متعدی بیمارو نه د خان محفوظ ساتلو ټیکه وهنه- (م- فارسی)- (افغانستان)-

خالوت:(خا-لوت)اسم- مذکر- وګوری: خلات-

خاله:(خا-له)اسم- واحد- مؤنث- تروږ- د مور خور- (م- عربی)-

خالی:(خا-لي)اسم- مذکر- (۱)د هفتې ورځ- د جمعې او اتوار تر منځ ورځ- (۲)میانه- ذیقعد- د میانې میاشت-

خالی:(خا-لي)صفت- تش- وزګار- خشے- ډډ- خلا لرونکے- (م- فارسی)-

خالی زالے:(خا-لي-زا-لے)اسم- د ډک والی ضد- تشوالے- خلاصوالے-

خام:(خام)اسم صفت- مذکر- (۱)اوم- کچه- چې پوخ نۀ وی- د پوخ ضد- (۲)ناتجربه کار-

خامپوځی:(خام-پو-ځي)اسم- جمع- مؤنث- خړپوځې- خړپوسې- په کونډو تلنه- په کوډو تلنه-

خامتا:(خام-تا)اسم- واحد- مؤنث- خمتا- چپړ- خمتو- خامتو- په کورنو کېډو تیاره شوې کپړه چې د پومبې نه جوړولے شی- جمع خامتاګانې

خامتما:(خام-ت-ما)اسم صفت- واحد- مذکر- خانتما- مغرور- کبرژن- متکبر- بې پروا- بې فکره- پرواه نه لرونکے-

خامچی:(خام-چي)اسم- واحد/ جمع- مؤنث- کچه کته- وره کُته-

خامخا:(خا-م-خا)متعلق فعل- ارومرو- ضرور- حتمی- حتماً-

خامزور:(خام-زور)اسم- واحد- مذکر- وګوری: خامزورے-

خامزوره:(خام- زو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګوری: خامزورے- جمع خامزورې-

خامزورے:(خام-زو-رے)اسم- خامزور- خامزوره- خمزور- خمزوره- خمزوری- شاپیانګه- شاپړنګه- نباتاتی نوم فزے لس الکے کېنجی (PHYSALIS ALKEKENGI)-

خامسوز:(خام-سوز)صفت- (۱)خمسوز- داسې سوځېدلے چې مېنځ ې کچه پاتې وی- په اور نیم سوځېدلے- (۲)شین غټ- خام- د غوښې هغه ټوټه چې په اور سوې وی-

خامک:(خا-مک)اسم- ګل کاری- دستکاری- (افغانستان)-

خامکار:(خام-کار)اسم صفت- ناتجربه کار- (م- فارسی)-

خامکاری:(خام-کا-ری)اسم- مؤنث- د خامکار کېدو حالت-

خامک دوزی:(خا-مک-دو-زي)اسم- مؤنث- دستکاری- ګل کاری-

خاملېټی:(خام-لي-ټي) اسم- واحد/جمع- مؤنث- لبټی- شیره-

خاموش:(خا-موش)صفت- غلے- چُپ- سنجیده- (م- فارسی)-

خاموشی:(خا-مو-شي)اسم- مؤنث- چوپیا- چپ والے- سنجیدګی- ارامتیا- قراری- چپتیا-

خامه:(خا-مه)اسم- واحد- مؤنث- د خام مؤنث- (۲)اکچه لار- کچه سړک-

(م- فارسی)-

خامه کاری:(خا-مه-کا-ري)اسم- دَ خټو کار- (افغانستان)-

خامی:(خا-مي)اسم- (۱)اومواليے- کچه والے- (۲)غلطي-

خان:(خان)اسم- (۱)دَ قبيلې سردار- مشر- عزتمند- (۲)دَ عزت خطاب- (۳)مالدار- بختور- (۴)سخي- جمع خانان- (م- ترکی)-

خان بادر:(خان-با-دَر)صفت- دَ انګرېزانو دَ وخت يو سرکاري خطاب- جمع خان بادران-

خان بادری:(خان-با-دَه-ري)اسم- مؤنث- (۱)دَ خان بادر مرتبه- (۲)مشري- معتبري-

خانتما:(خان-تَ-ما)صفت- وګورئ خامتما-

خانتماتوب:(خان-تَ-ما-توب)اسم- تکبر- غرور- لوئ نظري-

خانجي:(خان-جي)اسم صفت- هغه دَ احترام نوم چې مشرانو، يا خانانو ته دَ عزت پهٔ توګه وئيلے شي-

خانجے:(خان-جے)اسم- هوس- شهوت- دَ شهوت خارښت- (افغانستان)-

خانچنے:(خان-چهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)چيختاړ- خرميچ- (۲)توې شوې ژواله- (افغانستان)-

خانچه:(خان-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خوانچه يو قرائت- وګورئ خوانچه- جمع خانچې-

خان خوانين:(خان-خَ-وا-نين)اسم مرکب- جمع- مذکر- خانان- ملکان- غټان- معتبر خلق- شتهٔ من- سپين‌ږيري-

خان خوټے:(خان-خو-ټے)اسم- واحد- مذکر- ګوړاګے- جمع خان خوټي-

خان خېل:(خان-خېل)صفت- خانواده- دَ خانانو او غټانو لهٔ کورنۍ- (۲)غټ- دَ دبدبې څښتن- مؤنث خان خېله-

خاندان:(خا-نَ-دان)اسم- واحد- مذکر- خېل- کورني- قبيله- نسل- جمع خاندانونه- (م- فارسی)-

خانداني:(خا-نَ-دا-ني)صفت- (۱)کورني- (۲)دَ ښې کورنۍ- (م- فارسی)-

خاندک:(خان-دَک)اسم- واحد- مذکر- ديوال-

خاندور:(خان-دور)اسم- لمبه شوے اور- دَ اور لمبه- شغله- غوړنجه- (افغانستان)-

خاندومه:(خان-دُو-مه)اسم- واحد- مؤنث- خادمې- دَ سمسرې يو قسم- جمع خاندومې-

خانړې:(خان-ړې)اسم- دَ مرې يو قسم چې لوئ لوئ غوږونه يې وي او ډېره چابکه وي-

خانزاده:(خان-زا-ده)صفت- دَ خان خوئ- دَ خانانو دَ ټبر نه- دَ ښهٔ خاندان سره تعلق لرونکے- مؤنث خانزادګي- (م- فارسی)-

خان صاحب:(خان-صا-حب)اسم- هغه خطاب چې انګرېزانو لهٔ خوا به دَ علاقې خانانو ته هغوی سره دَ سياسي تعاون پهٔ بنياد ورکولے شو-

خان صاحبي:(خان-صا-ح-بي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ خان صاحب مرتبه- (۲)معتبري-

خانسامه:(خان-سا-مه)اسم- واحد- مذکر- خانسامان- باورچي- اشپز- جمع خانسامګان-

خانسامه توب:(خان-سا-مه-توب)اسم- دَ خانسامه کار- خانسامه ګيري-

خانسامه ګيري:(خان-سا-مه-ګي-ري)اسم- وګورئ خانسامه توب-

خانشين:(خا-نَ-شين)صفت- بېکاره- خانه نشين- پهٔ ګټ کښې ناست- پهٔ کور ناست- (افغانستان)-

خانقاه:(خان-قاه)اسم- دَ راهبانو دَ وسېدو ځائ- (م- فارسی)-

خانکوړے:(خان-کو-ړے)اسم صفت- دَ خانی دَ کور غړے- جمع خانکوري-

خانګره:(خانګ-ره)اسم- واحد- مؤنث- خنګره- سې- بوسکر- خانګړے- دَ سر دَ وېښتو خشکي- جمع خانګرې-

خانګړے:(خانګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خانګره-

خان ګوټے:(خان-ګو-ټے)اسم- واحد- مذکر- خان خوټے- ګوړاګے- جمع خانګوټي-

خانګي:(خا-نه-ګي)صفت- (۱)دَ کور سره متعلق- (۲)ذاتي- خپل-

خانلي:(خان-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- يو قسم بوټے چې دَ څناورو ناروغه ځائ پرې داغلے شي- (افغانستان)-

خانم:(خا-نَم)اسم- واحد- مؤنث- بي بي- بېګم- مېرمن- (۲)کډه- بال بچ- (۲)وادهٔ شوې ښځه- (م- ترکی)-

خانمه:(خا-نهٔ-مه)اسم- واحد- مؤنث- خانم- ښځه- مېرمنه- (۲)کډه-

خان واده:(خا-نَ-وا-ده)اسم صفت- (۱)خاندان- لوئ ټبر- (۲)خان- مُعتبر- غټ- شتهٔ من- خانواده- خان خانواده- (۲)دَ خانانو لهٔ کورنۍ-

خانوتا:(خا-نو-تا)اسم- واحد- مؤنث- خامتا- بيستي- کړې- شاړه شپاړه او شړله ټوټه چې جولاګان يې پهٔ څرخو اوبدي-

خانوده:(خا-نو-ده)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)خانواده- خانداني- شريف- ښهٔ- (۲)رعب ناک- رعب دار- دَ لوئ حېثيت او ښې کورنۍ څښتن- (افغانستان)-

خانه:(خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کور- مېنه- دَ استوګې ځائ- (۲)دَ ټول څيز نه يوه برخه- څهٔ حصه- (۳)چارخانه- کورکے- پهٔ کپړو يا کاغذ جوړه شوې څلور ګټېزه خلا- جدول- جمع خانې-

خانه بدوش:(خا-نه-بَ-دوش)اسم صفت- کوچے- کډواله- کډبه- کډمار- مؤنث خانه بدوشه- جمع مؤنث خانه بدوشې-

خانه بدوشي:(خا-نه-به-دو-شي)اسم- کډماري- کوچي توب- دَ کډې پهٔ سر ګرځولو کار-

خانه برباد:(خا-نه-بَر-باد)اسم صفت- واحد- مذکر- خانه خراب- فضول خرچه-

خانه بربادي:(خا-نه-بَر-با-دي)اسم- مؤنث- دَ کور ورانے- دَ کور بربادي-

خانه پړی:(خا-نه-پَ-ړي)اسم- مؤنث- وګورئ خانه پوري-

خانه پوری:(خا-نه-پو-ری)اسم- مؤنث- خانه پُری- دَ جدول ډکونه-

خانه تلاشي:(خا-نه-ته-لا-شي)اسم- واحد- مؤنث- دَ کور تالاشي- دَ کور لټونه-

خانه جنګي:(خا-نه-جَنګ-ګي)اسم- واحد- مؤنث- دَ ملک دننه جنګ- دَ وطن دَ مختلفو طبقو ترمېنځه جنګ- پهٔ یوه علاقه کښې دَ وُسېدونکیو ترمېنځه جنګ-

خانه خانه:(خا-نه-خا-نه)صفت- (۱)کور کور- (۲)هغه څهٔ چې ډېرې خانې لري-

خانه خراب:(خا-نه-خَ-راب)صفت- (۱)کوروړانے- (۲)سپېرهٔ- (۲)شریر او شېطان سړے- (م- فارسی)-

خانه خرابي:(خا-نه-خَ-را-بي)اسم- مؤنث- (۱)کور ورانېدنه- (۲) سپېرهٔ والے-

خانه دار:(خا-نه-دار)اسمِ صفت- (۱)دَ کور خاوند- دَ کور مالک- (۲)وادهٔ کړے سړے-

خانه داري:(خا-نه-دا-ري)اسم- مؤنث- (۱)کوروالے کونه- دَ ښځې او خاوند خپلو کښې پهٔ جنسی ډول یو ځایَ کېدنه- (۲)دَ کور انتظام-

خانه زاد:(خا-نه-زاد)صفت- (۱)کورنے- (۲)غلام- مرئیے- نوکر- (م- فارسی)-

خانه سامان:(خا-نه-سا-مان)اسم- خدمتګار- نوکر- ملازم- هغه نوکر چې دَ یو خاص او رسمي مقام خدمت کوی- (افغانستان)-

خانه کوچ:(خا-نه-کوچ)اسم- واحد- مذکر- سره دَ کوره لېږېدنه- کډه کونه-

خانشین:(خا-نه-نه-شین)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- پهٔ کور کښې ناست- ګوشه نشین-

خانه نشیني:(خا-نه-نه-شی-نی)اسم- مؤنث- پهٔ کور کښې ناستے-

خاند واده:(خا-نه-وا-ده)صفت- خانواده- مالدار- دَ ښې کورنۍ-

خانه ویران:(خا-نه-وی-ران)صفت- برباد- خراب او ودان ځایُ- خانه خراب-

خانی:(خا-نی)اسم- مؤنث- دَ قبیلې مَشری- دَ کلی مشری- باداری-

خانیځې:(خا-نی-ځې)صفت- جمع- مؤنث- خانې لرونکې- خانې خانې- خانیز- (افغانستان)-

خانیز:(خا-نیز)صفت- مذکر- وګوری: خانیځې-

خانې:(خا-نې)کلمهٔ ندا- (۱)ملک ته دَ مینې دَ مخاطبې تورے- (۲) دَ خانه جمع-

خانے:(خا-نے)اسم- واحد- مذکر- صحرائے غټ منرک- ړنده مږه- جمع خانې- (افغانستان)-

خانے:(خا-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ کابل دَ وزن پیمانې مطابق دَ اَتو سېرو سره برابر کانے- (افغانستان)-

خاوال:(خا-وال)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه ځایُ چې پکښې کډې بزې راغنډولے شی- شپول- پنډخایُ- (۲)دَ دېوال ډډ- (افغانستان)-

خاورزی:(خا-وَر-زی)صفت- خاورین- لهٔ خاورو جوړ-

خاورګاړے:(خا-ور-ګا-ړے)اسم- هغه کنده چې دَ خاورینو لوښو دَ جوړولو پاره ترې خاوره راوېستلے شوې وی- (افغانستان)-

خاوره:(خاوَ-ره)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)خَټه- دوړه- (۲)زمکه- (۲)وطن- (۴)سرهٔ- (۵)سپک- بې قدره- بې ښې- جمع خاورې-

خاورین:(خاو-رین)صفت- خاورزین- دَ خاورو نه جوړ-

خاوری:(خاوَ-ری)اسم- جمع- مؤنث- (۱)خوری- پټکړی- پټکنۍ- (۲)هغه سپینه خاوره چې ماشومان يُ پهٔ تختیو مږی- متې- متی- میتی-

خاورے:(خاو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)درګه- خنګل- (۲)شینګلے- یو قسم ګل- جمع خاوری-

خاورے:(خاوَ-رے)اسم- واحد- مذکر- کنډول- کونډول- کنډولے- جمع خاوری-

خاوند:(خا-وَند)اسم- واحد- مذکر- (۱)خدایُ پاک- (۲)بادار- مالک- څښتن- (۲)مېړهٔ- جمع خاوندان- (م- فارسی)-

خاوندتوب:(خا-وَند-توب)اسم- خاوند والے- څښتنوالے- مالک توب-

خاوندمړی:(خا-وَند-مهٔ-ړی)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- (۱)کُنډه ښځه- (۲)دَ بعضې خلقو تکیهٔ کلام- دَ ښځو ښېره- خاوندمړے-

خاوندمړے:(خا-وَند-مهٔ-ړے)صفت- وګوری: خاوندمړی-

خاوندوالے:(خا-وَند-وا-لے)اسم- وګوری: خاوند توب-

خاووک:(خا-ووک)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې کتبې نوم چې دَ سترګو دارو ترې جوړولے شی-

خاوه:(خا-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خټه- طبعیت- مزاج- ضمیر- زړهٔ- (۲)عادت- خاصیت- جوړښت-

خاویار:(خاو-یار)اسم- واحد- مذکر- دَ کب اګۍ- دَ سګ مهی اګۍ- دَ ډولفن مهی اګۍ- دَ سګ مهی اګۍ چې یورپین ترې مقوی غذا جوړوی- (افغانستان)-

خاین:(خا-ین)اسم- خیانت کونکے- (م- عربی)-

خایه:(خا-یه)اسم- واحد- مؤنث- خُټه- مردانه تخلیقی غدود- جمع خایې- (م- فارسی)-

خایه غلامان:(خا-یه-غُ-لا-مان)اسم- دَ انکورو یو قسم-

خایه مال:(خا-یه-مال)اسم- خوشامدګر- چاپلوس- جمع خایه مالان-

خایه مالی:(خا-یه-ما-لی)اسم- دَ خایه مال جوړېدو حالت-خوشامدی- خوشامندګری-

خائېدک:(خا-يُ-دک)اسم- وګوری: خیدک-

خائېنانه:(خا-يُ-نا-نه)متعلق فعل- دَ خیانت پهٔ شان- دَ خیانت پهٔ توګه-

خباثت:(خَ-با-ثت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګندګی- پلیتی- (۲)خبیثتوب- شېطانی- بدنیتی- جمع خباثتونه- (م- عربی)-

خبر:(خَ-بَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)اطلاع- پېغام- (۲)پته- (۲)نښه-

زبر"(خَ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(کِ-تاب)، جزم"(شکوڼ)، "ه"(زَ-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

(۴)هوش- خود- سود- (۵)دَ احوال پښتنه- (م- عربي)-

خبر :(خَ-بَر)اسمِ صفت- واقف- اګاه- خبردار- (م- عربي)-

خبر :(خَ-بَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)خبره- کلام- (۲)دَ جملې هغه جزو چې مبتدا تۀ وي (ګرامر)- (م- عربي)-

خبرتوب:(خَ-بَر-توب)اسم- خبرتیا- خبروالے- واقفتوب- واقفیت-

خبرتیا:(خَ-بَر-تیا)اسم- وګورئ خبرتوب-

خبرڅانے:(خَ-بَر-څا-نے)اسمِ صفت- خبررسان- چوغلګر- سُخن چین- (افغانستان)-

خبردار:(خَ-بَر-دار)اسمِ صفت- (۱)خبر- پوهه- واقف- (۲)ویښ- بېدار- (۳)دَ خبردارئ غږ- مؤنث خبرداره- جمع مؤنث خبردارې-

خبرداری:(خَ-بَر-دا-ري)اسم- دَ خبردار کېدو حالت-

خبررسان:(خَ-بَر-رَ-سان)اسمِ صفت- (۱)قاصد- خبر رسونکے- احوال وړونکے- (۲)جاسوس- مُخبر- (م- فارسي)-

خبررساني:(خَ-بر-رَ-سا-ني)اسم- دَ خبررسان کار او پېشه- خبر رسېدنه- خبر رسونه- خبر وړنه-

خبرغل:(خَ-بَر-غَل)اسم- چغل مار- چغلخور- دَ خبرو غل- (افغانستان)-

خبرغلا:(خَ-بَر-غَلا)اسم- چغلخوري- چغلماري- چغلي- (افغانستان)-

خبرغوړے:(خَ-بر-غو-ړے)اسمِ صفت- مطیع- فرمانبردار- تابع- فرمان وړونکے- جمع خبرغوړي- (افغانستان)-

خبرګیر:(خَ-بَر-ګیر)اسمِ صفت- خبر اخستونکے- احوال اخستونکے-

خبرګیری:(خَ-بَر-ګی-ري)اسم- دَ خبرګیر کېدو حالت- خبرونه- خبر اخستنه- احوال اخستنه-

خبرلوښ:(خَ-بَر-لوښ)اسمِ صفت- (۱)خبرلوښے- خبر رسونکے- (۲)چالاک- ژبه ور- (۳)ژغېدونے- ډېرې پخې خبرې کونکے-

خبرلوښتوب:(خَ-بر-لوښ-توب)اسم- (۱)خبرلوښوالے- خبرلوښتیا- خبرلوښي- دَ ښو خبرو پۀ چل پوهېدنه- (۲)چالاکي-

خبرلوښتیا:(خَ-بر-لوښ-تیا)اسم- وګورئ خبرلوښتوب-

خبرلوښوالے:(خَ-بر-لوښ-وا-لے)اسم- وګورئ خبرلوښتوب-

خبرلوښي:(خَ-بَر-لو-ښي)اسم- مؤنث- دَ خبرلوښ کار- خبرلوښتوب-

خبرلوښے:(خَ-بَر-لو-ښے)اسمِ صفت- وګورئ خبرلوښ- جمع خبرلوښي-

خبروالے:(خَ-بَر-وا-لے)اسم- وګورئ خبرتوب-

خبرول:(خَبَ-رَ-وَل)مصدر متعدي- خبر ورکول- اطلاع ورکول- پیغام رسول-

خبرون:(خَبَ-رَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خبرول-

خبرونکے:(خَبَ-رَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خبرونکي- مؤنث خبرونکې- وګورئ خبرول-

خبرونګ:(خَبَ-رَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خبرول-

خبرونه:(خَبَ-رَ-وَۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خبرول-

خبره:(خَ-بَۀ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګفت- وینا- قول- لوظ- خبر- (۲)واقعه- معامله- پېښه- حادثه- جمع خبرې-

خبره اتره:(خَ-بَۀ-ره-اَ-تَۀ-ره)اسم- ګفتګو- احوال- جمع خبرې اترې-

خبره مبره:(خَ-بَۀ-ره-مَ-بَۀ-ره)اسم- واحد- مؤنث- خبره اتره- ګفتګو-

خبریال:(خَ-بَر-یال)اسمِ صفت- اخبار رېډیو وغېره خبرونکے- دَ خبرونو دَ اېجنسي یا اخبار نمائنده- (افغانستان)-

خبریالي:(خَ-بَر-یا-لي)اسم- دَ خبریال کار او پېشه- خبرونه راټولونه- (افغانستان)-

خبریه:(خَ-بَ-ري-یه)صفت- خبر ته منسوب- دَ جملې یو قسم چې دوه برخې مبتدا او خبر لري-

خبرېدل:(خَبَ-رې-دَل)مصدر لازم- اګاه کېدل- پوهېدل-

خبرېدن:(خَبَ-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خبرېدل-

خبرېدنګ:(خَبَ-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خبرېدل-

خبرېدنه:(خَبَ-رې-دَۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خبرېدل-

خبرېدونکے:(خَبَ-رې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خبرېدونکي- مؤنث خبرېدونکې- وګورئ خبرېدل-

خبرېدۀ:(خَبَ-رې-دۀ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خبرېدل-

خبط:(خَ-بط)اسم- لېونتوب- دَ لېونتوب تر حده رسېدلے- (م- عربي)-

خبیث:(خَ-بیث)اسمِ صفت- واحد- مذکر- پلیت- ناپاک- بدمعاش- (م- عربي)-

خبیر:(خَ-بیر)اسمِ صفت- (۱)دَ خدائ پاک یو صفتي نوم- (۲)اګاه- خبر- پوه- دانا- علیم- (م- عربي)-

خپ:(خَپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)خاپ- نښه- داغ- (۲)پټ-

خپاړي:(خَ-پا-ړي)اسم- جمع- مؤنث- خاپوړې- خرپوڅې-

خپ خپ:(خَپ-خَپ)صفت- خاپ خاپ- ټاپ ټاپ- چکي چکي- ټپي ټپي- ټکي ټکي-

خپتیان:(خَپ-تیان)اسم- ناراضګي-

خپرول:(خَپ-رَ-وَل)مصدر متعدي- (۱)خورول- نشر کول- اشاعت ورکول- (۲)تار پۀ تار کول- تیت کول- شیندل- منتشر کول- (افغانستان)-

خپرون:(خَپ-رَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خپرول-

خپرونکے:(خَپ-رَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خپرونکي- مؤنث خپرونکې- وګورئ خپرول-

خپرونګ:(خَپ-رَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خپرول-

خپرونه:(خَپ-رَ-وَۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خپرول-

خپري:(خَپ-ري)اسمِ صفت- جمع- مؤنث- خورې ورې- پرېشانې- دَ خپره جمع-

خپرېدل:(خَپ-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)خورېدل- شائع کېدل- نشر کېدل- (۲)تار پۀ تار کېدل- منتشر کېدل-

ئ (خې-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ي (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

خپرېدن:(خَپ-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خپرېدل-

خپرېدنګ:(خَپ-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خپرېدل-

خپرېدنه:(خَپ-رې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خپرېدل-

خپرېدونکے:(خَپ-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خپرېدونکی- مؤنث خپرېدونکې- وګورئ خپرېدل-

خپرېدهٔ:(خَپ-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خپرېدل-

خپړ:(خَ-پړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)خپړه- چمبه- پنجه- (۲)دَ پښو تلے- (۲)بوړبوکې- دړېدوړکه- کرګله- ځبلې- کرګېله- ګردباد-

خپړوله:(خَ-پړ-وهٔ-له)اسم- پنجه چنار- دَ چنار یو قسم او دَ مغې پاڼه- دَ نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ چنار- جمع خپړولې-

خپسر:(خَپ-سَر)ضمیر- خپل ځان- خپل سر- (متروک)-

خپسکه:(خَ-پَس-که)اسم- واحد- مؤنث- خپسه- خپسکې- کپسی- خپکه- قپسه- ننګڅه- خپسکے- (م- عربی کابوس)-

خپسه:(خَ-پهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خپسکه- جمع خپسې-

خپک:(خَ-پَک)اسم- واحد- مذکر- ترلمے- دله خپک- دَ پیشو مومره یو ځناور چې قیمتي پوستکے لري- (افغانستان)-

خپکه:(خَ-پهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خپسکه- جمع خپکې-

خپکی:(خَ-پَ-کی)صفت- (۱)غلې- منافقه- (۲)خوږ- سوز- یو قسم ازغن بوټے- (اسم)-

خپکے:(خَ-پَ-کے)صفت- (۱)غلے- (۲)منافق- جمع خپکی-

خپګان:(خَپ-ګان)اسم- واحد- مذکر- (۱)خفګان- خفقان- (۲)غم- (م- عربی)-

خپل:(خَپل)صفت- (۱)ځاني- ذاتي- (اکثر زما، زمونږ، ستا، ستاسو، دَ هغهٔ، دَ هغوی، یا دَ بل اسم نه پس ته راځي- (۲)خپلوان- رشته دار- جمع خپلوان-

خپل اړے:(خَپل-اَ-ړے)صفت- (۱)خپل چارے- خودغرضه- پهٔ ځان مئین- (۲)ځان منکے- پوره- پهٔ خپلو پښو ولاړ- جمع خپل اړی-

خپل پردے:(خَپل-پَر-دے)اسم- رشته دار او نور خلق- ټول خلق- مرځوک-

خپلتوب:(خَپل-توب)اسم- خپلوی- خپلولی- خپلتیا- خپلوالے- رشته داری-

خپلتیا:(خَپل-تیا)اسم- وګورئ خپلتوب-

خپل چاروکے:(خَپل-چا-رو-کے)صفت- (۱)خودکار- (۲)خودغرض-

خپل چاری:(خَپل-چا-ری)اسم- خودغرضي- خودخواهي- پهٔ ځان مئینېدنه-

خپل چارے:(خَپل-چا-رے)اسم صفت- وګورئ خپل اړے-

خپل خوښے:(خَپل-خو-ښے)اسم صفت- خودپسند- دَ خپلې خوښې مالک-

خپل سرتوب:(خَپل-سر-توب)اسم- خپل سروالے- خپل سری- خپل مني-

خپل سرتیا:(خَپل-سر-تیا)اسم- وګورئ خپل سرتوب-

خپل سروالے:(خَپل-سر-وا-لے)اسم- وګورئ خپل سرتوب-

خپل سری:(خَپل-سَ-ری)اسم- وګورئ خپل سرتوب-

خپل سرے:(خَپل-سَ-رے)اسم صفت- خودسر- خپل سریز- دَ خپلې مرضۍ مالک-

خپل ګلوی:(خَپل-ګل-وی)اسم- خپلوی- خپښی- خپلولی-

خپل مخی:(خَپل-مهٔ-خی)اسم- پهٔ خپل فکر تلنه- خپله مرضي کونه-

خپل مخیز:(خَپل-مهٔ-خیز)اسم صفت- وګورئ خپل مخے-

خپل مخے:(خَپل-مهٔ-خے)اسم صفت- خپل مخیز- پهٔ خپل فکر تلونکے- دَ خپلې مرضۍ خاوند-

خپل منمے:(خَپل-م-نَ-مے)اسم صفت- متکبر- مغرور- (افغانستان)-

خپلواک:(خَپل-واک)اسم صفت- دَ خپل اختیار خاوند- ازاد- خودمختار- بې تېده- (افغانستان)-

خپلواکتوب:(خَپل-واک-توب)اسم- استقلال- خپل اختیار- خپلواکي- (افغانستان)-

خپلواکتیا:(خَپل-واک-تیا)اسم- ازادي- استقلال- خودمختاري- خپلواکي- خپل اختیاري- (افغانستان)-

خپلواکوالے:(خَپل-واک-وا-لے)اسم- خودمختاری- ازادوالے- مستقل والے- (افغانستان)-

خپلواکي:(خَپل-وا-کي)اسم- مؤنث- ازادي- خودمختاري- استقلال- (افغانستان)-

خپلواکے:(خَپل-وا-کے)اسم- ازاد- دَ خپل واک خاوند- خودمختار- (افغانستان)-

خپلوالے:(خَپل-وا-لے)اسم- وګورئ خپلتوب-

خپلوان:(خَپل-وان)اسم- جمع- خپل- دَ خپل جمع- رشته داران- عزیزان- مؤنث خپلوانه- جمع مؤنث خپلوانې-

خپلول:(خَپهٔ-ل-وَل)مصدر متعدی- خپل کول- دوست جوړول- قبضه کول-

خپلولی:(خَپل-و-لي)اسم- مؤنث- خپلوی- قرابت- رشته- خپښی-

خپلون:(خَپهٔ-ل-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خپلول-

خپلونکے:(خَپهٔ-ل-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خپلونکی مؤنث خپلونکې- وګورئ خپلول-

خپلونګ:(خَپهٔ-ل-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خپلول-

خپلونه:(خَپهٔ-ل-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خپلول-

خپلوی:(خَپل-وی)اسم- خپلولی- دوستي- عزیزولي- رشته داری- رشته-

خپلوے:(خَپل-وے)اسم- نس خوږے- دَ پېچش مرض-

خپلېدل:(خَپهٔ-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)ملګرے کېدل- (۲)رشته یا دوستي جوړېدل- نژدې کېدل- (۳)پهٔ قبضه کښې راتلل-

خپلېدن:(خَپهٔ-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خپلېدل-

خپلېدنګ:(خَپهٔ-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خپلېدل-

خپلېدنه:(خَپهٔ-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خپلېدل-

َ زبر "(غ-بهٔ-ره)، ٘ زورکے "(شل)، ُ پېش "(نو-کا-ره)، ِ زېر "(ل-تاب)، ْ جزم "(شکون)، ٓ "(ز-ړه)، ٔ "(پو-بې-دهٔ)

خپلېدونکے:(خپۀ-لې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خپلېدونکی- مؤنث خپلېدونکې- وګورئ خپلېدل-
خپلېدۀ:(خپۀ-لې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خپلېدل-
خپم:(خپم)صفت- (۱)مغلوب- مات- تښتېدلے- (۲)پۀ لتو ومل شوے- پۀ زمکه غزولے- (۳)اسم- دَ خارښت مرض- پم-
خپنځ:(خپنځ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- پۀ زمکه غرېدلے- پۀ زمکه هوار شوے- پۀ زمکه تخته شوے-
خپنځتوب:(خپنځ-توب)اسم- مذکر- زمکې سره غزېدنه- پۀ زمکه تخته کېدنه-
خپنځتیا:(خپنځ-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ خپنځتوب-
خپنځل:(خپن-ځل)مصدر متعدی- پۀ زمکه هوارول- پۀ زمکه پلنول-
خپنځلے:(خپن-ځۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خپنځل-
خپنځن:(خپن-ځن)حاصلِ مصدر- وګورئ خپنځل-
خپنځنه:(خپن-ځۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خپنځل-
خپنځوالے:(خپنځ-وا-لے)اسم- مذکر- پۀ زمکه هوار والے-
خپنځونکے:(خپن-ځون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خپنځل-
خپنځېدل:(خپن-ځې-دل)مصدر لازم- پۀ زمکه هوارېدل- پۀ زمکه تخته کېدل-
خپنځېدلے:(خپن-ځې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خپنځېدل-
خپنځېدن:(خپن-ځې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خپنځېدل-
خپنځېدنګ:(خپن-ځې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خپنځېدل-
خپنځېدنه:(خپن-ځې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خپنځېدل-
خپنځېدونکے:(خپن-ځې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خپنځېدل-
خپنځېدۀ:(خپن-ځې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خپنځېدل-
خپند:(خپند)اسم- واحد- مذکر- (۱)یوه غېږه پاکه شوې (وړی، پومبه)- (۲)وګورئ خپنځ-
خپندل:(خپن-دل)مصدر لازم- (۱)دَ لرګی پۀ ذریعه وړی څنډل- (۲)زمکې سره یو شان کول- زمکې سره هوارول- (۳)وګورئ خپنځل-
خپندلے:(خپن-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خپندل-
خپندن:(خپن-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندل-
خپندنګ:(خپن-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندل-
خپندنه:(خپن-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندل-
خپندول:(خپن-ده-ول)مصدر متعدی- وګورئ خپندل-
خپندون:(خپن-ده-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندل-
خپندونکے:(خپن-ده-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خپندل-
خپندونکے:(خپن-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خپندل-
خپندونګ:(خپن-ده-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندل-
خپندونه:(خپن-ده-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندل-

خپندوۀ:(خپن-ده-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندل-
خپندۀ:(خپن-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خپندل-
خپندېدل:(خپن-دې-دل)مصدر لازم- (۱)دَ لرګی پۀ ذریعه وړی څنډل کېدل- (۲)زمکې سره هوارېدل-
خپندېدن:(خپن-دې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندېدل-
خپندېدنګ:(خپن-دې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندېدل-
خپندېدنه:(خپن-دې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خپندېدل-
خپندېدونکے:(خپن-دې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خپندېدل-
خپندېدۀ:(خپن-دې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خپندېدل-
خپڼ غوړے:(خ-پڼ-غو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوړ پوڅکی- جمع خپڼ غوړی- (افغانستان)-
خپو:(خ-پو)اسمِ صفت- هغه سړے چې مړی ئې خفه کړے شی-
خپ وچوف:(خپ-و-چوف)صفت- ورو شان- پۀ خاموشی- غلے غلے- پۀ غلا-
خپ وچوپ:(خپ-و-چوپ)صفت- وګورئ خپ وچوف-
خپوڅې:(خ-پو-څې)اسم- جمع- مؤنث- خرپوڅې- خاپوڅې- خپوړې- خاپوڅې-
خپور:(خپور)صفت- (۱)خور- تیت وپرک- ویر- اوار- غوړېدلے- (۲)نشر- شائع-
خپورتوب:(خپور-توب)اسم- خپورتیا- خپوروالے- ویروالے- کډوړتوب- (افغانستان)-
خپورتیا:(خپور-تیا)اسم- وګورئ خپورتوب-
خپوروالے:(خپور-وا-لے)اسم- وګورئ خپورتوب-
خپورول:(خپو-ر-ول)مصدر- وګورئ خپرول-
خپورون:(خپو-ر-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خپورول-
خپورونکے:(خپو-ر-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خپورونکی- مؤنث خپورونکې- وګورئ خپورول-
خپورونګ:(خپو-ر-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خپورول-
خپورونه:(خپو-ر-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خپورول-
خپورېدل:(خپو-رې-دل)مصدر لازم- وګورئ خپرېدل-
خپورېدن:(خپو-رې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خپورېدل-
خپورېدنګ:(خپو-رې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خپورېدل-
خپورېدنه:(خپو-رې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خپورېدل-
خپورېدونکے:(خپو-رې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خپورېدونکی- مؤنث خپورېدونکې- وګورئ خپورېدل-
خپورېدۀ:(خپو-رې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خپورېدل-

ئ" (څی-رل)، ې"(هې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

خړتن:(خَړ ه-تَن)صفت- مذکر- هغه څوک چې قبې ئې رابهيرې- هغه څوک چې ډېره زياته او هر وخت ئې پوزه رابهيرې- قتها- ګړنګن- ګړينګن-

خړتوب:(خَړ-توب)اسم- (۱)خړتيا- خړوالے- (۲)شرمنده کېدنه-

خړتول:(خَړ ه-تَ-ول)مصدر متعدی- (۱)خړت خړت ويستل- په برق برق او برج برج خندل- (۲)غول- (۳)شړتول-

خړتولے:(خَړ ه-تَ-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړتولي- مؤنث خړتولې- وګورئ خړتول-

خړتون:(خَړ ه-تَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ خړتول-

خړتونکے:(خَړ ه-تَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړتونکي- مؤنث خړتونکې- وګورئ خړتول-

خړتونګ:(خَړ ه-تَ-ونګ)حاصل مصدر-.وګورئ خړتول-

خړتونه:(خَړ ه-ت-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړتول-

خړتوی:(خَړ-توی)اسم- واحد- مذکر- سېلاؤ- سېلاب- چله- ځله- د اُبو خړه-

خړته:(خَړ ه-ته)اسم- واحد- مؤنث- قړته- عبث خبره- چټې خبره- جمع خړتې-

خړتې پړتې:(خَړ ه-تې-پړه-تې)اسم- مؤنث- چل ول- هغه دغه- فريب- غولونه- ټال مټول-

خړتېدل:(خَړ ه-تې-دل)مصدر لازم- (۱)خړت خړت کول- په برج برج خندل- (۲)غولے کېدل- (۳)شړتېدل-

خړتېدلے:(خَړ ه-تې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړتېدلي- مؤنث خړتېدلې- وګورئ خړتېدل-

خړتېدن:(خَړ ه-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خړتېدل-

خړتېدنګ:(خَړ ه-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړتېدل-

خړتېدنه:(خَړ ه-تې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړتېدل-

خړتېدونکے:(خَړ ه-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړتېدونکي- مؤنث خړتېدونکې- وګورئ خړتېدل-

خړتېده:(خَړ ه-تې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ خړتېدل-

خړچ:(خَړچ)اسم صوت- د لرګی يا بل سخت څيز د ماتېدو اواز-

خړچند:(خَړ-چند)صفت- خرسند- د خړچ اواز کونکے- خړچ کونکے-

خړچول:(خَړ ه-چ-ول)مصدر متعدی- د لرګی يا بل کلک څيز د ماتولو اواز- کړچول- ټوپک تماچه کښې ګټې وهل، د ټوپک تماچې لټ شکته پورته کول-

خړچولے:(خَړ ه-چ-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړچولي- مؤنث خړچولې- وګورئ خړچول-

خړچون:(خَړ ه-چ-ون)حاصل مصدر- وګورئ خړچول-

خړچونکے:(خَړ ه-چ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړچونکي- مؤنث خړچونکې- وګورئ خړچول-

خړچونګ:(خَړ ه-چ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خړچول-

خړچونه:(خَړ ه-چ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړچول-

خړچهار:(خَړ ه-چ-هار)اسم صوت- خړچے- د لرګی يا بل سخت څيز د ماتېدو اواز-

خړچېدل:(خَړ ه-چې-دل)مصدر لازم- لرګے ماتېدل- د ټوپک لټ وهلے کېدل-

خړچېدلے:(خَړ ه-چې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړچېدلي- مؤنث خړچېدلې- وګورئ خړچېدل-

خړچېدن:(خَړ ه-چې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خړچېدل-

خړچېدنګ:(خَړ ه-چې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړچېدل-

خړچېدنه:(خَړ ه-چې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړچېدل-

خړچېدونکے:(خَړ ه-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړچېدونکي- مؤنث خړچېدونکې- وګورئ خړچېدل-

خړچېده:(خَړ ه-چې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ خړچېدل-

خړچے:(خَړ ه-چے)اسم صوت- وګورئ خړچهار-

خړځن:(خَړ ه-ځن)اسم صفت- ګرزړن- بلغمی سړے- زيات خراشکی توکونکے-

خړخړې:(خَړ-خَ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- غړغړې- د بنيادم يا څاروی د حلالولو په وخت چې د وينو د شراری او بهېدونه کوم د خړخړ اواز پورته کيږی- (م- فارسی)-

خرخشه:(خَر-خَ-شه)اسم- واحد- مؤنث- خرخښه- فتنه- غشک- ټکه- شړشپه-

خردانګه:(خر-دانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خردانګه-

خړده:(خَړ-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د قرآن شريف په ختم دم شوے خوږ څيز يا د زيارتونو راوړلې شوې مالګه يا خوږ څيز- (۲)متبرک خوراک-

خړز:(خَړز)اسم صوت- وچ ټخے- د څهٔ څيز د غرڅېدلو يا د ټوپک د خلاصېدلو اواز-

خړزول:(خَړ-ز-ول)مصدر متعدی- (۱)د ټوپک خلاصول- ګرزول- غرڅول- (۲)دواړه لاسونه پړقول- (۳)وچ ټخ کول- (۴)د دروازې يا داسې بل کوم شی پورې کول-

خړزولے:(خَړ-ز-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خړزول-

خړزون:(خَړ-ز-ون)حاصل مصدر- وګورئ خړزول-

خړزونکے:(خَړ-ز-وون-کے)اسم فاعل- جمع خړزونکی- مؤنث خړزونکې- وګورئ خړزول-

خړزونګ:(خَړ-ز-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خړزول-

خړزونه:(خَړ-ز-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړزول-

خړزهار:(خَړ-ز-هار)اسم صوت- (۱)خړزے- ګرزار- د څهٔ څيز د غرڅېدو پرله پسې اواز- غړزهار- (۲)پرله پسې ټخے-

خړزېدل:(خَړ-زې-دل)مصدر لازم- (۱)ګرزېدل- د څهٔ څيز د غرڅېدلو يا د ټوپک د ډزو پرله پسې اوازونه وتل- (۲)پرله پسې وچ ټخے کول-

خړزېدلے:(خَړ-زې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړزېدلی- مؤنث خړزېدلې- وګورئ خړزېدل-

خړزېدن:(خَړ-زې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خړزېدل-

خړزېدنګ:(خَړ-زې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړزېدل-

خړزېدنه:(خَړ-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړزېدل-

خړزېدونکے:(خَړ-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړزېدونکی- مؤنث خړزېدونکې- وګورئ خړزېدل-

خړزېدهٔ:(خَړ-زې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خړزېدل-

خړزے:(خَړ-زے)اسم صوت- وګورئ خړزهار-

خړژن:(خړ-ژَن)صفت- مذکر- (۱)خړبخن- خړرنګه- خړوزمه- (۲)خیرن- (۳)تت- خړ-

خړژنتوب:(خړ-ژَن-توب)اسم- (۱)خړژنتیا- خړژنوالے- خړرنګ والے- (۲)خیرن والے-

خړژنتیا:(خړ-ژَن-تیا)اسم- وګورئ خړژنتوب-

خړژنوالے:(خړ-ژَن-وا-لے)اسم- وګورئ خړژنتوب-

خړس:(خَړس)اسم صوت- خړسا- (۱)دَ لرګی یا بل کلک څیز دَ ماتېدو اواز- (۲)پهٔ څپېړو دَ وهلو اواز- (۳)دَ معدې نه دَ باد راوتلو اواز-

خړسا:(خَړ-سا)اسم صوت- وګورئ خړس-

خړسترکے:(خَړ-سټر-کے)صفت- واحد- مذکر- (۱)ملامته- شرمنده- بې شرم- (۲)شکست خورده- (۳)دَ خړو سترګو خاوند- خړې سترګې لرونکے-

خړسند:(خړ-سَند)صفت- (۱)کروسند- کروسند- کړسند- چغزی لرګے- ژرماتېدونکے لرګے- (۲)فضول خبرې کونکے- (افغانستان)-

خړسول:(خړ-س-وَل)مصدر متعدی- پهٔ لرګی، لښته یا څپېړې سره وهل- (۲)وزول- (۳)دَ څهٔ څیز دَ ماتېدلو اواز-

خړسولے:(خَړ-س-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړسولی- مؤنث خړسولې- وګورئ خړسول-

خړسون:(خَړ-سَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خړسول-

خړسونکے:(خَړ-س-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړسونکی- مؤنث خړسونکې- وګورئ خړسول-

خړسونګ:(خَړ-س-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړسول-

خړسونه:(خَړ-س-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړسول-

خړسه:(خړهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ اسمان کښې دَ تندر اواز- اَتت- تندر- جمع خړسې-

خړسهار:(خَړ-س-هار)اسم صوت- (۱)خړسے- دَ لرګی یا بل کوم داسې څیز دَ ماتېدلو پرله پسې اواز- (۲)دَ وهلو ټکولو پرله پسې اواز-

خړسېدل:(خَړ-سې-دَل)مصدر لازم- (۱)دَ خړس اواز پورته کېدل- (۲)وهلے کېدل- شړقېدل-

خړسېدلے:(خَړ-سې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړسېدلی- مؤنث خړسېدلې- وګورئ خړسېدل-

خړسېدن:(خَړ-سې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خړسېدل-

خړسېدنګ:(خَړ-سې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړسېدل-

خړسېدنه:(خَړ-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړسېدل-

خړسېدونکے:(خَړ-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړسېدونکی- مؤنث خړسېدونکې- وګورئ خړسېدل-

خړسېدهٔ:(خَړ-سې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خړسېدل-

خړسے:(خَړ-سے)اسم صوت- وګورئ خړسهار-

خرطوم:(خر-طوم)اسم- واحد- مذکر- خړتم- خلتم- (م- عربی)-

خړکه:(خ-رهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خراړه- جمع خړکې-

خړکے:(خړ-کے)اسم تصغیر- (۱)خړ- دَ خړ اسم تصغیر- (۲)ساده- خوارږکے- خوارکے-

خړکے:(خُړ-کے)اسم صوت- دَ حلالېدو پهٔ وخت دَ حلالېدونکی څیز دَ مرۍ نه پهٔ زور سره دَ وینې دَ دارې وهلو اواز-

خرکے:(خَر-کے)اسم صوت- هغه اواز چې لهٔ قی کولو یا پهٔ زوره ټوکلو سره پیدا کیږی-

خړګاوه:(خړ-ګا-وه)اسم- خړه- خړې اُبهٔ- دَ سېلاب لهٔ خټو ډکې اُبهٔ-

خړګبیخ:(خړ-ګه-بیخ)اسم- مذکر- سپېرهٔ سحر- دَ سحر ملابانګ وخت نه لږ وړاندې وخت چې لږ وخت دَ پاره پکښې رڼا ښکاره شی او بیا غیبه شی- دَ صبح صادق ضد-

خړل(خ-ړل)مصدر- اخېړول- خاړه کول- لېږول- (۲)تلے کول-

خړل:(خَړل)مصدر- غُل کول- مُتیازې کول- لوئ حاجت پوره کول- لوئ بول کول-

خړلمانځهٔ:(خړ-لمان-ځهٔ)اسم- خړسنی- سوړی سحر- دَ سحر لهٔ نمانځهٔ نه پس چې لا خړه خوره شوې نهٔ وی- دَ چړبانګی نه پس-

خړلمے:(خړ-لهٔ-مے)اسم- سنجاب- دَ منږک نه لږ غټ ځناور چې دَ څرمنې نه ئې پوستین جوړولے شی-

خړلے:(خ-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړلی- مؤنث خړلې- وګورئ خړل-

خړلے:(خړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خړلی- مؤنث خړلې- وګورئ خړل-

خړمبن:(خ-رَم-بَن)اسم صفت- واحد- مذکر- خړوا- خړمبزن- قړمبزن- کړنګور- کړینګور- کړینګن- هغه څوک چې پوزه ئې هر وختې ګنده وی-

خرمت:(خر-مَت)اسم- قبې- خنې- کړینګ- ګړنګ-

خړموټ:(خَړ-موټ)اسم- دَ ماشومانو یو قسم لوبه- (افغانستان)-

خړمور:(خَړ-مور)اسم- ښاړے- دَ زرکې پهٔ انداز دَ غرهٔ یوه حلاله مرغۍ-

(افغانستان)-

خړمور:(خړ-مور)اسم صفت- شاړه زمکه- ورانه او خرابه زمکه-

خړمېزن:(خړ-مي-زن)اسم صفت- وګورئ خړمبن- مؤنث خړمېزنه- جمع خړمېزنه-
مؤنث خړمېزنې-

خړن:(خړن)اسم صفت- مذکر- ډېر خوراکي سړے- ګېډه ور-

خړن:(خ-ړن)اسم صفت- مذکر- خړو- ويرندوکے- ډارن- تړن-

خړن:(خ-ړن)حاصل مصدر- وګورئ خړل-

خړن:(خړن)حاصل مصدر- وګورئ خړل-

خړنتوب:(خړن-توب)اسم- خړنتيا- ډېر خوراک کونه-

خړنتيا:(خړن-تيا)اسم- وګورئ خړنتوب-

خړنج:(خړنج)اسم- بې اتفاقي- ورانے- نفاق- خړنګ- خلل- خج- دړ-
(افغانستان)-

خړنجاوي:(خړن-جا-وي)صفت- خړنج اچونکے- خللي-

خړند:(خړند)اسم- واحد- مذکر- خريز- خنډ- مونډ- سټه- ډنډر- خړنډ-
ناړ- جمع خړندونه-

خړنډ:(خړنډ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خړند- جمع خړنډونه-

خړنګ:(خ-ړنګ)اسم- واحد- مذکر- کربوړے- صحرائي چرمښکی- سورسرکه-
يوه ځنګلي سمسره- (افغانستان)-

خړنګ:(خړنګ)اسم- خړنج- رخنه- خنډ- خلل- دړ-

خړنګ:(خ-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړل-

خړنګ:(خړنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړل-

خړنګه:(خړنګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ډيل- تاخير- ايسارتيا- (۲)خړنج-
اړ- خنډ-

خړنګے:(خړن-ګے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم صحرائے بوټے چې ګل ې شين
او پاڼې ې خړې وي او لوړوالے ې د ۵۰ نه تر ۷۵ سنټي ميټرو پورې
وي- جمع خړنګي- (افغانستان)-

خړنه:(خ-ړه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړل-

خړنه:(خړه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړل-

خړو:(خ-ړو)صفت- مذکر- خړن- ويرېدونکے-

خړواکے:(خړ-وا-کے)اسم- (۱)خړ رنګ لرنه- (۲)تتوالے- (۳)خجالت-
خجلتوت- شرم-

خړوب:(خ-ړوب)صفت- اُبه شوے- سېراب شوے- پڼه-

خړوبره:(خړ-وب-ره)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- خړبخن- خړوالي ته
مائل- سور نارنجي - هغه رنګ چې نه خړ وي او نه سور وي-

خړوبکړے:(خ-ړوب-کړه-ړے)اسم- د ختو کار کونکے- لېوګر- (افغانستان)-

خړوبن:(خړو-بن)صفت- په خړو اُبو لړلے- په ختوککړ-

خړوبول:(خ-ړو-ب-ول)مصدر متعدي- (۱)ښه اُبه کول- فصل په اُبو ښه
مړول- پڼه کول- (۲)د ختو دبوالونو له د خاړې ګړوبے ورکول-

خړوبون:(خ-ړو-ب-ون)حاصل مصدر- وګورئ خړوبول-

خړوبونګ:(خ-ړو-ب-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خړوبول-

خړوبونه:(خ-ړو-ب-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړوبول-

خړوبوونکے:(خ-ړو-ب-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړوبونکي-
مؤنث خړوبونکې- وګورئ خړوبول-

خړوبېدل:(خ-ړو-بې-دل)مصدر لازم- (۱)سېراب کېدل- ښه اُبه کېدل- پڼه
کېدل- فصل په اُبو ښه مړېدل- (۲)دېوالونه ښه لېو کېدل-

خړوبېدن:(خ-ړو-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خړوبېدل-

خړوبېدنګ:(خ-ړو-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړوبېدل-

خړوبېدنه:(خ-ړو-بې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړوبېدل-

خړوبېدونکے:(خ-ړو-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع
خړوبېدونکي- مؤنث خړوبېدونکې- وګورئ خړوبېدل-

خړوبېده:(خ-ړو-بې-ده)حاصل مصدر او ماضي استمراري د واحد غائب
صيغه- وګورئ خړوبېدل-

خړوبے:(خ-ړو-بے)اسم- په اُبو کښې حل شوې خټه- ګړوبے- خاړه-
(افغانستان)-

خړوپ:(خړوپ)اسم صوت- په اُبلن او ټينګ څيز کښې د بل د ړوبېدو يا
غرخېدلو اواز-

خړوپړ:(خه-ړو-پړ)صفت- خړپړ-

خړوپول:(خړو-پ-ول)مصدر متعدي- په ټينګ او اُبلن څيز کښې د بل څيز د
غرخولو يا ړوبولو اواز-

خړوپون:(خړو-پ-ون)حاصل مصدر- وګورئ خړوپول-

خړوپونکے:(خړو-پ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړوپونکي-
مؤنث خړوپونکې- وګورئ خړوپول-

خړوپونګ:(خړو-پ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خړوپول-

خړوپونه:(خړو-پ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړوپول-

خړوپېدل:(خړو-پې-دل)مصدر لازم- په ټينګ او اُبلن څيز کښې د څه څيز د
غرخېدو اواز پېدا کېدل-

خړوپېدن:(خړو-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خړوپېدل-

خړوپېدنګ:(خړو-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړوپېدل-

خړوپېدنه:(خړو-پې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړوپېدل-

خړوپېدونکے:(خړو-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع
خړوپېدونکي- مؤنث خړوپېدونکې- وګورئ خړوپېدل-

خړوپېده:(خړو-پې-ده)حاصل مصدر او ماضي استمراري د واحد غائب
صيغه- وګورئ خړوپېدل-

خړوپے:(خړو-پے)اسم- (۱)بې خونده پخکړے- بې خونده انګولے- هغه
کټوی چې مالګه مساله پرې برابر نه وي- (۲)ګرمې شوملې-

خړوپے:(خړو-پے)اسم- تولی- پوفک- پپوپک- د لرګي ړوه ميله چې د ختو

کولې پکښې د خلې د پوکې په زور سره د نښې خوا ته غرخولې شي- (افغانستان)-

خروړک:(خر-و-رک)اسم- خروړک- سره او سپین ګلونه لرونکې یو قسم سبزي چې د سپرلي په شروع کښې زرغنيږي او کچه خوړے شي-

خروز:(خروز)اسم صوت- (۱)د ټوپک د بز اواز- (۲)اسم- پساؤ- کونوبے-

خروس:(خ-روس)صفت- مذکر- بې ایمانه- بې غیرته- بې همته- چړوس- خروسان-

خروس:(خروس)اسم صوت- د څه څيز د غرځېدلو یا ماتېدلو پوب اواز-

خروستوب:(خ-روس-توب)اسم- مذکر- بې همتي- بې غیرتي- چړوستوب- خروستیا-

خروستیا:(خ-روس-تیا) اسم- مؤنث- وګورئ خروستوب-

خروسکه:(خروس-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غروسکه- غرسکه- (۲)تېزه بد بوئي- بدبوزه- (۳)تور او ګڼ لوګے- (۴)بدۀ بوئ-

خروسکے:(خروس-کے)اسم- غرسکه- د وريځې وړه ټوکړه- جمع خروسکي-

خروسوالے:(خ-روس-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ خروستوب-

خروسه:(خرو-سه)اسم- واحد- مؤنث- بوئ- ووږمه- جمع خروسې-

خرو کونتر:(خۀ-رو-کون-تر)اسم- مذکر- خړې کونتر- یو قسم کونتر چې رنګ ئې خړ وي-

خړول:(خۀ-ړ-ول)مصدر متعدی- (۱)خړ رنګ ورکول- (۲)شرمول- مغلوبول- (۳)په اُبو کښې خاورې اچول-

خرومبے:(خروم-بے)صفت- خوړیند- خوړین- پوخ-

خړون:(خۀ-ړ-ون)حاصل مصدر- وګورئ خړول-

خړونکے:(خۀ-ړ-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړونکي- مؤنث خړونکې- وګورئ خړول-

خړونکے:(خ-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړونکي- مونث خړونکې- وګورئ خړل-

خړونکے:(خړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړونکي- مؤنث خړونکې- وګورئ خړل-

خړونګ:(خۀ-ړ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خړول-

خړونه:(خۀ-ړ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړول-

خړه:(خۀ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خاړه- لهه- سېلاب راوړې خټه- مغه خاوره چې سېلاب د پورته علاقو نه مېداني علاقو ته راوړې وي- (۲)تیارۀ- نماښام- خړ نماښام- دوند- خړ سحر- (۳)دشمني- مخالفت- (۴)انري وريځ- جمع خړې-

خړه:(خۀ-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د خړ مؤنث-

خړه بکه:(خۀ-ړه-بۀ-که)اسم- خراړه- یو خړونکې مرغۍ- جمع خړه بکې-

خړه پړه:(خۀ-ړه-پۀ-ړه)صفت- مؤنث- (۱)ببخی خړه- (۲)بېره ساده- (۳)اسم- سحر وخت- جمع خړې پړې-

خړه پښتنه:(خۀ-ړه-پښ-تۀ-نه)صفت- مرکب- سوچه پښتنه- ساده پښتنه- جمع خړې پښتنې-

خړه کے:(خۀ-ړه-کے)صفت- مذکر- (۱) خړونکے- د خاکي رنګ- (۲)ساده- جمع خړه کي- جمع مؤنث خړه کې-

خړمار:(خړ-مار)(خ-رار)اسم صوت- د قي په وخت لۀ خلې وتونکے اواز-

خړیالے:(خړ-یا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خړ- خیرن- (۲)ناخوښه- بې طبعې- دلګیر- زهیر-

خړیت:(خړیت)اسم صفت- چیت پوزے- بونجا- بونجے- پیت پزے- پیخ پزے- (۲)خوړین- خوړینه- وروست- (۳)بوډا- زوړ- عمر خوړلے-

خړیت پزے:(خړیت-پۀ-زے)صفت- مذکر- وګورئ خړیت-

خړیتوالے:(خړیت-وا-لے)اسم- وګورئ خړیتوب-

خړیتوب:(خړیت-توب)اسم- (۱)خړیتوالے- پلن والے- (۲)زوړ والے- وروست والے-

خړیتول:(خړې-تۀ-ول)مصدر متعدی- چیتول- زړول- خوړینول- ورستول-

خړیتون:(خړې-تۀ-ون)حاصل مصدر- وګورئ خړیتول-

خړیتونکے:(خړې-تۀ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړیتونکي- مؤنث خړیتونکې- وګورئ خړیتول-

خړیتونګ:(خړې-تۀ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خړیتول-

خړیتونه:(خړې-تۀ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړیتول-

خړیته پزه:(خړې-ته-پۀ-زه)اسم صفت- مؤنث- پلنه پوزه- جمع خړیتې پزې- (افغانستان)-

خړیتېدل:(خړې-تې-دل)مصدر لازم- (۱)پلنېدل-چیتېدل- (۲)زړېدل- ورستېدل- (۳)بوډا کېدل- عمر خوړلے کېدل-

خړیتېدن:(خړې-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خړیتېدل-

خړیتېدنګ:(خړې-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خړیتېدل-

خړیتېدنه:(خړې-تې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خړیتېدل-

خړیتېدونکے:(خړې-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړیتېدونکي- مؤنث خړیتېدونکې- وګورئ خړیتېدل-

خړیتېدۀ:(خړې-تې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ خړیتېدل-

خړیتي:(خړې-تي)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- د پلنې پوزې لرونکې ښځه-

خړیتے:(خړې-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- پلنه پوزه لرونکے سړے-

خړیځ:(خړیځ)اسم- واحد- مذکر- تربلے- هود- اوډ- وسته- ډنډ- حوض- تالاؤ- جوور- تلاؤ- مغه ځای چې د کاریز اُبۀ پکښې جمع کیږي- جمع خړیځونه-

خړیچ:(خړیچ)صفت- مذکر- چیت پیت- د پښو لاندې مښلے شوے-

خړیس:(خړیس)اسم صفت- مذکر- خړیسن- دبو- غټ- لوئ- ناپېر- ستر- ککر- څرب- ناراسته-

زبر"(خ-بۀ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ۀ"(ز-ړه)، ۀ"(پو-ښې-دۀ)

خړيستوب:(خړيس-توب)اسم- خړېمار- خړيسوالے- ډېر زيات غټوالے- هغه غټ والے او ډېر ځُرب والے چې سړے پرې بدرنګ ښکاری-

خړيسمار:(خړيس- مار)صفت- مذکر- ګېډه ور- ګېډغارے- ډېر خوراکه- خېټور-

خړيسوالے:(خړيس-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ خړيستوب-

خړيمار:(خړی-مار)صفت- مذکر- وګورئ خړيسمار-

خړين:(خړين)صفت- (۱)خړيند- پوست- نرم- ډېر پوخ- اُبړن- (۲)قهرېدلے- سوخت- په غصه- (۲)ښهٔ وهلے شوے-

خړينبو:(خړين-بو)صفت- ناولے سړے- چټل- مُردار خور(سړے)- (افغانستان)-

خړينتوب:(خړين-توب)اسم- مذکر- خړين والے- پوستوالے- وروست والے- پوخ والے-

خړيند:(خړيند)صفت- مذکر- وګورئ خړين-

خړيندول:(خړين-د-ول)مصدرِ متعدی- (۱)خړينول- نرمول- پستول- ډېر پخول- ابړنول- (۲)قهرول- غصه کول- (۲)سخته سزا ورکول- ښهٔ وهل- پهٔ وهلو وهلو خمبيره کول-

خړيندون:(خړين-د-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندول-

خړيندونګ:(خړين-د-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندول-

خړيندونه:(خړين-د-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندول-

خړيندونکے:(خړين-د-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خړيندونکی- مؤنث خړيندونکې- وګورئ خړيندول-

خړيندېدل:(خړين-دې-دل)مصدرِ لازم- (۱)خړنېدل- نرمېدل- پستېدل- ډېر پخېدل- ابړنېدل- (۲)قهرېدل- غصه کېدل- (۲)سخته سزا ورکېدل- ښهٔ وهلے کېدل- پهٔ وهلو وهلو خمبيره کېدل-

خړيندېدن:(خړين-دې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندېدل-

خړيندېدنګ:(خړين-دې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندېدل-

خړيندېدنه:(خړين-دې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندېدل-

خړيندېدونکے:(خړين-دې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خړيندېدونکی- مؤنث خړيندېدونکې- وګورئ خړيندېدل-

خړيندېدهٔ:(خړين-دې-دهٔ)حاصلِ مصبر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خړيندېدل-

خړين والے:(خړين-وا-لے)اسم- وګورئ خړين توب-

خړينول:(خړی-ن-ول)مصدر- وګورئ خړيندول-

خړينون:(خړی-ن-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندون-

خړينونکے:(خړی-ن-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خړينونکی- مؤنث خړينونکې- وګورئ خړيندونکے-

خړينونګ:(خړی-ن-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندونګ-

خړينونه:(خړی-ن-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندونه-

خړينه:(خړی-نه)اسم- واحد- مؤنث- مينه- الفت- محبت- جمع خړينې-

خړينېدل:(خړی-نې-دل)مصدرِ لازم- وګورئ خوړيندېدل-

خړينېدن:(خړی-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خړيندېدن-

خړينېدنګ:(خړی-نې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندېدنګ-

خړينېدنه:(خړی-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خړيندېدنه-

خړينېدونکے:(خړی-نې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خړينېدونکی- مؤنث خړينېدونکې- وګورئ خړينېدل-

خړينېدهٔ:(خړی-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خړينېدل-

خړې:(خهٔ-ړې)اسم- مؤنث- هغه خاوره چې دَ قُلبې کولو پهٔ وخت دَ يوې پهٔ کُنده کښې نښتې وی-

خړېدل:(خهٔ-ړې-دل)مصدرِ لازم- (۱)خړ پړ کېدل- سپېرهٔ کېدل- خاکی کېدل- (۲)ککړېدل- (۲)شرمېدل-

خړېدل:(خړې-دل)مصدر- دَ کډې بزې دَ لېوهٔ يا سپی دَ لاسه پهٔ خاورو خټو کښې لغړېدل- (۲)دَ خاورو ريخېدل-

خړېدن:(خهٔ-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خړېدل-

خړېدن:(خړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خړېدل-

خړېدنګ:(خهٔ-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خړېدل-

خړېدنګ:(خړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خړېدل-

خړېدنه:(خهٔ-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خړېدل-

خړېدنه:(خړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خړېدل-

خړېدونکے:(خهٔ-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خړېدونکی- مؤنث خړېدونکې- وګورئ خړېدل-

خړېدونکے:(خړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خړېدونکی- مؤنث خړېدونکی- وګورئ خړېدل-

خړېدهٔ:(خهٔ-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خړېدل-

خړېدهٔ:(خړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خړېدل-

خړی:(خړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ خړانګه-

خړی پړی:(خړی-پړی)اسم- وګورئ خړی پړی-

خړی پړی:(خړی-پړی)اسم- عُذر- زاری- منت- خړی پړی- خان ټيټ ښودنه-

خړے:(خهٔ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱) دَ خړ رنګ- خړرنګے- (۲)اسم- وګورئ خړې-

خړے:(خهٔ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خېټو- خېټور- ګېډور- ګېډغارے- ډېر خوراکه- (۲)خېټه- ګېډه- (۲)دَ بنيادم ډکې متيازې- بول-

خز:(خز)اسم- واحد- مذکر- خزَ- تورلمے- بيلونګړے- خړ- (افغانستان)-

ی (ښی-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پيا-لی)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

خز:(خَز)اسم- واحد- مذکر- ځیګه کمبله- شړله شړۍ- (افغانستان)-

خز:(خزّ)اسم- مذکر- یو قسم پوستین- (۲)دَ ورېښمینې کپړې یو قسم ورېښمین ټوکے-

خزان:(خَ-زان)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ بهار ضد- منے- دَ اوړی او ژمی مېنځمے موسم- دَ ژمی دَ مخې موسم چې دَ وُنو پاڼې پکښې رژی- (۲)زوال- بې رونقی-

خزانچی:(خَ-زان-چی)اسم صفت- واحد- مذکر- خزانه دار- خزانه ساتونکے- پهٔ خزانه کښې دَ روپیو ذمه وار- جمع خزانچیان-

خزانول:(خَ-زا-نه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)مړاوی کول- جینګړول- شیته کول- (۲)رژول- تویول- (افغانستان)-

خزانه:(خَ-زا-نه)اسم- واحد- مؤنث- خورزونه- خرزانه- هغه ځائ چې پکښې روپۍ پیسې، سرهٔ زر او سپین زر ساتلے شی- روپۍ- مال دولت- بېنک- جمع خزانې-

خزانه دار:(خَ-زا-نه-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- صراف- خزانچی- دَ خزانې ساتونکے- خزانه لرونکے-

خزانېدل:(خَ-زا-نې-دَل)مصدرِ لازم- مړاوی کېدل- جینګړېدل- شیته کېدل- (۲)تویېدل- رژېدل- تلېدل- (افغانستان)-

خزدکه:(خَز-دهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ښخرے- ګونګټې- غزاړې- ګونګټه- مرغټانه- جمع خزدکې-

خزری:(خز-ری)اسم- جمع- مؤنث- (۱)زړې وړې ټوټې- (۲)جامې- کالی-

خزرے:(خَ-زهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- ککه- خڅوڅکے- ککرے- دَ روټۍ پوټے- بېر لړ- جمع خزری-

خزف:(خَ-زف)اسم- کودے- کوډړے- ټیکرے- کودرے-

خزګے:(خَز-ګے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم لرګے چې ترې نه دَ ټوپک وغیره کُنداغ جوړولے شی- جمع خزګی-

خزله:(خز-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱) یو قسم بوټے چې جامې پرې وینځلے شی- جمع خزلې- (۲)خځله- خاشه-

خزمه:(خَز-مه)اسم- واحد- مؤنث- ښکار ته دَ پټېدو ځائ- دَ څۀ ځائ پټونے- خزه- باره- پځونے- جمع خزمې-

خزنده:(خَ-زَن-ده)اسم فاعل- خوزندکے- حشره- ماران لړمانان- چینجی مینجی- میږی، وېنهٔ او داسې ټول چینجی چې سوړو او ګټونو وغیره کښې استوګه لری-

خزوکه:(خَ-زُو-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم چینجے چې پهٔ غشیانو کښې پیدا کیږی-

خزه:(خَ-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خزمه-

خزه:(خه-زه)اسم- واحد- مؤنث- خازه- دَ قبر تیږه- شناخته- دَ قبر ډبره- جمع خزې-

خزی:(خه-زی)اسم- (۱)وګورئ ارغونکے- (۲)مورچه-

خزیزکے:(خَ-زیز-کے)اسم- واحد- مذکر- خزیزګے- پزغمے- لونګ- پپ- مېخکے- دَ سرو یا سپینو دَ چارګل پهٔ طور پهٔ پوزه اچولے کېدونکے یو قسم پسول-

خزیزګے:(خَ-زیز-ګے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خزیزکے-

خړ:(خَړ)اسم- خیړ- پړچ- پرچرخے- پوټکے- پتخے- دَ پرهر پترے-

خړ:(خَړ)اسم صوت- خړا- هغه اواز چې دَ شاروؤ دَ حلالولو پهٔ وخت یې دَ مرۍ نه راوځی-

خړ:(خُړ)اسم- تور لمے- بیلونګړے- خژ- وګورئ خز-

خړا:(خَ-ړا)اسم صوت- وګورئ خړ (۲)-

خړکے:(خړ-کے)اسم صوت- خرهار- خرار- خرنجهار- دَ سینې پهٔ بیماری کښې دَ اخته مریض دَ سا اخستو پهٔ وخت دَ هغهٔ دَ سینې اواز-

خړهار:(خړ-هار)اسم صوت- خرار- خرهار- خرنجهار- خرکے- وګورئ خړکے-

خس:(خَس)اسم- (۱)خسو- خسپے- چخچی- (۲)بې ځیز- کم مقدار- (۳)کک- بې ارزښته ځیز- (۴)لرګے- بالڼ- خشاک- (۵)قطره- تیکه-

خسا:(خَسا)صفت- مذکر/مؤنث- سخا- خوسا- خراب- وروست- بدبویه چې چینجی پکښې شوی وی- بدرنګه-

خساتوب:(خَسا-توب)اسم- مذکر- وګورئ خساوالے-

خساره:(خَ-سا-ره)اسم- واحد- مؤنث- تاوان- زیان- نقصان- جمع خسارې- (م- عربی)-

خساست:(خَ-سا-سَت)اسم- بُخل- شومی- شومتیا-

خساوالے:(خَسا-وا-لے)اسم- سخاوالے- وروست والے- بدبوئی- بدشکلی- بدرنګی-

خساوره:(خَسا-وهٔ-ره)اسم- دَ یو دارو بوټے- سخاموره- نباتاتی نوم- اېکورس کېلېمس اوډوریټس (ACORUS CALAMUS ODORATUS)-

خساموره:(خَسا-مو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خساوره-

خسبون:(خَس-بُون)اسم- واحد- مذکر- خسبه- هغه کس چې دَ ځنګل یا غرهٔ نه خشاک راوړی- جمع خسبانهٔ-

خسبونتوب:(خَس-بُون-توب)اسم- خسبه توب- دَ خسبون کار-

خسبه:(خَس-به)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خسبون-

خسبه توب:(خَس-به-توب)اسم- دَ خسبه کسب- لرګی راوړنه-

خستوکی:(خس-تو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ کجورې پهٔ مینځ کښې کلک زنے (زوړی)- دَ کجورې تاکی- دَ کجورې هډوکے-

خستنے:(خَس-تَ-نے)اسم- واحد- مذکر- پچه- خسنے-

خسته:(خَس-ته)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)زده- زېلے- بدحال- پرېشان- (۲)بسمې بسمې- خړین- (۳)خفه- زهیر- (۴)ژوبل- زخمی-

خسټکے:(خس-ټه-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خړرنګے چینجے-

خسټوسکے:(خَس-ټوس-کے)اسم- خرک- خسټکے- خړ رنګ لرونکے یو چینجے-

خس خس:(خَس-خَس)صفت- ذره ذره- ټوټې ټوټې- ذرې ذرې- ريچې ريچې- ريز مريز-

خُس خُس:(خُس-خُس)اسمِ صوت- پُس پُس- پۀ غوږونو کښې پټې پټې خبرې کونه-

خس خشاک:(خَس-خَ-شاک)اسم- خلپل- بالن- بالڼ-

خسر:(خُسر)اسم- واحد- مذکر- خُسر- سَخر- دَ سړي دَ ښځې پلار يا دَ ښځې دَ خاوند پلار- جمع خُسران-

خسرکے:(خَ-سر-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ روټۍ نرے پوټے-خخوڅکے-

خسرګنې:(خُسر-ګَ-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سخرګنې- دَ سخر کورنې-

خسره:(خَس-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ زمکو وغيره هغه فهرست چې پټواريان يې دَ زميندار دَ نوم ملکيت دَ رقبې او دَ فصل دَ تفصيل دَ ياداشت دَ پاره پکاروي-

خسره نمبر:(خَس-ره-نَم-بر)اسم- هغه نمبر چې پۀ خسره کښې درج وي-

خسرے:(خس-رے)اسم- دَ ړوړي خاشه- لړه ړوړي-

خسړ:(خَ-سَړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)خسړے- خسنے- خلے- تيلے- (۲)پوټسکے- بکسکے- (۳)خساک-

خسړے:(خَ-سۀ-ړے)اسم- وګورئ خسړ- جمع خسړي-

خسزکے:(خَ-سَز-کے)اسم- زړے- خڅوزکے- خڅوسکے- دَ ړوړي پوټے- دَ ړوړي خسوزے-

خسک:(خَ-سَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غوږونو خيرے- (۲)خسکي توت چې قلم پکښې لګېدلے وي او توتان يې دَ خوراک جوګه نۀ وي-

خسک:(خَ-سَک)اسم- (۱)مونګڼ- کټمل- سرخک- منکوړه- (۲)خاشه- (۳)دَ ماشومانو يوه مشهوره بيماري- (۴)کم اصل- بد اصل- (۵)هغه ميوه دارې وَنې چې قلم پکښې نۀ وي لګولے شوے-

خسکه:(خَس-که)اسم- واحد- مؤنث- پۀ دېوال کښې پرېښوے شوے چاود- جمع خسکې-

خسکه:(خَ-سۀ-که)اسم- واحد- مؤنث- ګونګټه- جمع خسکې- (افغانستان)-

خُسکېدل:(خُس-کې-دَل)مصدرِ لازم- خوزېدل- ړقېدل- بوخبوخې کول- حرکت ورکول-

خسکېدلے:(خُس-کې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع خسکېدلي- مؤنث خسکېدلې- وګورئ خسکېدل-

خسکېدن:(خُس-کې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خسکېدل-

خسکېدنګ:(خُس-کې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خسکېدل-

خسکېدنه:(خُس-کې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خسکېدل-

خسکېدونکے:(خُس-کې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خسکېدونکي- مؤنث خسکېدونکې- وګورئ خسکېدل-

خسکېدۀ:(خُس-کې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خسکېدل-

خسکے:(خَس-کے)اسم- واحد- مذکر- خڅوزے- دَ روټۍ وړه ټوکړه- جمع خسکي-

خسمان:(خَس-مان)اسم- واحد- مذکر- (۱)خسنے- خسنکے- خړرنګے ګونګټ- (۲)سپک سړے- (۳)ضامن- (۴)مُضر-

خسمان ليک:(خَس-مان-ليک)اسم- ضمانت نامه- (افغانستان)-

خسمانو:(خَس-ما-نو)اسم صفت- وګورئ خسماني-

خسمانه:(خَس-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غمخوري- پالنه- غمخواري- (۲)ضمانت-

خسمانه توب:(خَس-ما-نه-توب)اسم- غمخوري- غم خورګي-

خسمانه ګر:(خَس-ما-نه-ګر)اسم صفت- مذکر- (۱)خسمانه وال- پالونکے- خدمت کونکے- (۲)غمخور-

خسمانه وال:(خَس-ما-نه-وال)اسم- وګورئ خسمانه ګر-

خسماني:(خَس-ما-ني)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خسمانو- ضامن- ضمانتي- ذمه وار- ذمه يا ضمانت ورکونکے- (۲)دربمګړے- مينځ کښې راتلونکے-

خسنے:(خَس-نے)اسم- واحد- مذکر- ږېران- ګوواټه- جمع خسني-

خسنکے:(خَ-سَن-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱) دَ وړو ماشومانو دَ يوې لوبې نوم- (۲)خسمان- يو خړرنګے ګونګټ-

خسوړه:(خَ-سو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خسوزه-

خسوزه:(خَ-سو-زه)اسم- واحد- مؤنث- ږېره وړه ذره- وړه ټوټه- خڅنکے- خسوره- خسنکے-

خسوف:(خَ-سوف)اسم- (۱)دَ سپوږمۍ تندر نيونه- (۲)بر- (م- فارسي)-

خسوکے:(خَ-سو-کے)اسم- واحد- مذکر- ګنګخړے- خسنے- خسوسکے- ډانډے- نرۍ واښۀ- دَ خس هومره- جمع خسوکي-

خسي:(خَ-سي)صفت- واحد- مذکر- وګورئ خصي- (دَ خصي غلطه املا)-

خسي توب:(خَ-سي-توب)اسم- مذکر- (۱)خصي توب- نامرد والے- کمزوري-

خسيس:(خَ-سيس)اسم صفت- واحد- مذکر- شوم- کنجوس- بخيل- سخت- سپېرۀ- چې نۀ پۀ ځان خرڅ کوي او نۀ پۀ بل-

خسيکي:(خَ-سي-کي)اسم- هغه غوښه چې هډوکي ورسره وي-

خسيل:(خَ-سيل)اسم- (۱)خيد- خويد- دَ غنمو او اَربشو بوټے چې يو لېشت لوړ وي- (۲)يو قسم واښۀ-

خسے:(خَ-سے)اسم صفت- خشې- بې کاره- بې ښې- بې توښې-

خسے:(خَسے)اسم- يو قسم غريز بوټے- (افغانستان)-

خش:(خَش)اسم- (۱)غېږ- آغوش- (۲)خواښې-

خشاک:(خَ-شاک)اسم- بالڼ- دَ سوزولو لرګي- بالن-

خشاند:(خشاند)اسم- واحد- مذکر- شخوند- چپ-

خشان:(خشان)صفت- ذليل- کمينه- مؤنث خشانه- جمع مؤنث خشانې-

خشاوره:(خشاو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خساوره-

خشانی:(خ-شا-نی)اسم- حشان- غوسانی- خشوی- غوشیان-

خشپل:(خش-پل)اسم- خلپل- (افغانستان)-

خشت:(خشت)صفت- تر- پهٔ اُبو کښې لوند- نمژن- خُشت پُشت- مؤنث خُشته-

خشت پشت:(خشت-پُشت)اسم صفت- واحد- مذکر- خیشت پیشت- لوند خُشت- جب جوب- مؤنث خُشته پُشته-

خشتکے:(خُش-تَ-کے)اسم- خښتکے- یوه وړه درې گُټیزه دَ کپړې ټوټه چې دَ قمیص پهٔ ترخ کښې دَ مضبوطیا دَ پاره لګولے شی-

خشتول:(خُش-تَ-وَل)مصدرِ متعدی- خیشتول- لوندول-

خشتون:(خُش-تَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خشتول-

خشتونکے:(خُش-تَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خشتونکی- مؤنث خشتونکې- وګورئ خشتول-

خشتونګ:(خُش-تَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خشتول-

خشتونه:(خُش-تَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خشتول-

خشتېدل:(خُش-تې-دَل)مصدرِ لازم- لوندېدل-

خشتېدن:(خُش-تې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خُشتېدل-

خشتېدنګ:(خُش-تې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خُشتېدل-

خشتېدنه:(خُش-تې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خُشتېدل-

خشتېدونکے(خُش-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خشتېدونکی- مؤنث خشتېدونکې- وګورئ خُشتېدل-

خشتېدهٔ:(خُش-تې-دهٔ)حاصلِ مصدر او ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خُشتېدل-

خشخاش:(خَش-خاش)اسم- واحد/جمع- مذکر- قشقاش- قاش قاش- خاش خاش- دَ کوکنارو یا ږوږې دَ غټیو هر رنګه مېده مېده تخم- دَ نباتاتی نوم د پاره وګورئ خاشخاش-

خشک:(خُشک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وُچ- شنه- کلک- (۲)بې اُبو- سپور- بې نمه-

خشکاوه:(خُش-کا-وه)اسم صفت- (۱)وُچ کال- خُشک سالی- سوکړه- وچوبے- قحط- (۲)خشک مېدان- وچه مېره- هغه زمکه چې صرف دَ باران پهٔ اُبو اُبیږی-

خشک سالی:(خُشک-سا-لی)صفت- وګورئ خشکاوه-

خشکول:(خُش-کَ-وَل)مصدر- وُچول-

خُشکه:(خُش-که)اسم- واحد- مؤنث- خوشکه- (۱)وچه زمکه- دَ تری ضد- خُشکی- (۲)ساده پیکه یشېدلې وریژې- (۳)هغه اوړهٔ چې نانبایان یٔ پهٔ تخته دَ پیړو لاندې اچوی- (۴)سیاهی چوس-

خشکی:(خُش-کی)اسم- واحد- مؤنث- وچه زمکه- وچه مېوه- (۲)صفت- تند خویٔ- غصه ناک- (۲)سختی- (۴)سپوروالے- (۵)دَ سر یوه بیماری- وګورئ خوشکی-

خُشکے:(خُ-شه-کے)اسم تصغیر/صفت- واحد- مذکر- دَ " خُشے " اسم تصغیر- وګورئ خُشے-

خشم:(خَ-شَم)اسم- (۱)غُصه- قهر- سوخت- خفګان- (۲)ګرمی-

خشمناک:(خَ-شَم-ناک)اسم صفت- غُصه ناک- قهرژن-

خشمی:(خش-می)اسم صفت- واحد- مذکر- بد خشمه- بد خویه- تُند خویه- بد مزاجه- ګور وروخے- هغه څوک چې تل یٔ تندے او وروخې ګورې نیولې وی-

خشن:(خَ-شَن)اسم- واحد- مذکر- دَ روټې نمړی- نوړی- یوه مړی- نوړی-

خشن:(خَشن)اسم- شخوند-

خشنک:(خَ-شَنک)صفت- (۱)غاوره- مغرور- متکبر- لویٔ نظرے- دَ چا خبره نهٔ منونکے- سمه خبره پهٔ بده معنی اخستونکے- هغه څوک چې هر وخت غُصه غُصه وی- (۲)هغه څاروے چې لاس نهٔ منی- اړی مار او لتې څاروے- ترېدلے-

خشنکوب:(خَ-شَنک-توب)اسم- سرکشی- خشنکی- شوخی-

خشنکی:(خَ-شَنک-کی)اسم- وګورئ خشنکتوب-

خشنود:(خُش-نود)صفت- اسوده- خوشحال- موړ- پټ- (م- فارسی)-

خشنودی:(خُش-نو-دی)اسم- اسودګی- خوشنودی- (م- فارسی)-

خشنهٔ:(خَش-نهٔ)اسم- جمع- خاشنهٔ- خشنهٔ- خرشین- خرشینهٔ- خاشینهٔ-

خشنهٔ:(خَش-نهٔ)اسم- وګورئ خَشنه-

خشوع:(خَ-شوع)اسم- عاجزی- انکساری- (م- عربی)-

خشوے:(خَ-شهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- غوشانی- خرشین- خوسیانی-

خشے:(خَش-نے)اسم- مذکر- هغه ټول سامان چې دَ وادهٔ نه وړاندې دَ زلمی دَ کوره دَ ناوې کره وړلے شی- دا دَ وادهٔ یو رسم دے-

خشیانړه:(خَش-یان-ړه)اسم- مؤنث- دَ خرو یا اَسپو خاشنهٔ-

خُشے:(خَ-شے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)یواځې- یله- بې کاره- عبث- (۲)بې خوده- سودائی- لېونے- جمع خُشی-

خُشے تشے:(خَ-شے-تهٔ-شے)اسم صفت- واحد- مذکر- بې کاره- عبث- فضول-

خښتکے:(خښ-ته-کے)اسم- دَ کپړې هغه درې ګُټیزه ټوټه چې دَ قمیص ترخ کښې دَ مضبوطوالی دَ پاره لګولے شی- جمع خښتکی-

خښتک:(خښ-تَک)اسم- واحد- مذکر- دَ پرتوګ دَ منځ ټوټه-

خښته:(خښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ خټې دَ قالب پهٔ ذریعه جوړ شوے هغه مستطیل نما سله چې دَ مکاناتو پهٔ جوړولو کښې پکارولے شی- (م- فارسی- خشت)-

خښم:(خَ-ښم)اسم- غصه-

خښے:(خه-ښے)اسم- واحد- مذکر- لمسے- ټاټ-

خصام:(خَ-صام)اسم- دَ خصیم جمع- جنګیالی-

خصلت:(خَص-لَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)عادت- خویٔ- غونے- ذاتی صفت-

زبر "(غَ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېښ "(نو-کا-ره)، زېر "(کِ-تاب)، جزم "(شکون)، ه "(زَ-ړه)، هٔ "(ږو-بې-دهٔ)

کردار- تاثیر- خاصیت- (۲)طبعیت- مزاج- جمع خصلتونه-

خصم:(خَ-صَم)اسم- دشمن- مرڅے- میرڅمن- میرڅن- میرځ- میرڅے- (۲)خاوند- مالک- (م- عربی)-

خصمانه:(خَص-ما-نه)اسم- واحد-مؤنث- څوکی- څوکیداری- نگرانی- امن کښې ساتنه- سلامتیا- پهٔ نظر کښې ساتل- (م- فارسی)-

خصمړے:(خَ-ص-مهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- خاوند مړے- یو کنځل-

خصوص:(خُ-صوص)اسم- خاصونه- پهٔ فرق کونه- ځانگړی کونه-

خصوصاً:(خُ-صو-صن)متعلق فعل- پهٔ خاص ړول- پهٔ تېره- علی الخصوص- پهٔ تېره تېره- خاصتاً-

خصوصی:(خُ-صو-صی)صفت- (۱)یواځې- یواځینے- خاص- (۲)پهٔ خاص ړول- پهٔ خاص شکل- پهٔ خاص نظم- (۲)شخصی- دَ ځان-

خصوصیت:(خُ-صو-صی-یت)اسم- خاص خویٔ- خاص خویٔ او صفت- خوبی-

خصومت:(خُ-صو-مَت)اسم- دُشمنی- بدی- دُښمنی-

خصی:(خَ-صی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ټکېدلے څاروے چې پهٔ ماده دَ ختلو قابل نهٔ وی-

خضاب:(خِ-ضاب)اسم- واحد- مذکر- وسمه- دَ سپینو وېښتو دَ تورولو رنگ- دَ نکریزو اوړهٔ کړې پاڼې-

خضر:(خِ-ضر)اسم- (۱)دَ یو پېغمبر نوم- (۲)لارښود- رهبر- لار ښودونکے-

خضوع:(خُ-ضوع)اسم- تواضع- عاجزی- خاکساری- کم نوسی- کمینی-

خط:(خط)اسمِ- واحد- مذکر- (۱)چیټۍ- لیکلے کاغذ- لیک- تحریر- (۲)کرښه- دَ څو نرو ټکو یوځایٔ کېدنه- (۳)حجامت- تازه راټوکېدلې ږیره-

خطا:(خَ-طا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جرم- قصور- غلطی- خطائی- تېروتنه- غولېدنه- (۲)پهٔ نښه نهٔ لگېدنه- نا رسا- (۳)کم اصل- بد ذات- جمع خطاگانې-

خطا اېستل:(خَ-طا-اېس-تَل)مصدرِ ترکیبی- تېر اېستل- غولول- خطا کول- تېرباسل-

خطاب:(خِ-طاب)اسم- واحد- مذکر- تقریر- کلام- خبره- (م- عربی)-

خطابه:(خَ-طا-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بیانیه وېنا- خبرې کونه- (۲)خُطبه وینه- خطیب کېدنه- (م- عربی)-

خطاط:(خَ-طاط)صفت- خوش نویس- ښهٔ خط لیکونکے- (م- عربی)-

خطاطی:(خَ-طا-طی)اسم- دَ خطاط پېشه او کار-

خطا کار:(خَ-طا-کار)صفت- خطا کونکے- تېروتونکے- سهوه کونکے- گناه گار-

خطا کاری:(خَ-طا-کا-ری)اسم- دَ خطا کېدو حالت-

خطا وتل:(خَ-طا-وَ-تَل)مصدر- تېروتل- غولېدل- غلطېدل-

خطاوې:(خَ-طا-وې)اسم- جمع- مؤنث- غلطی- گناه گانې- گناهونه- خطاگانې-

خطائی:(خَ-طا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- خطا- گناه- غلطی- تېروتنه- خطا کېدنه- پهٔ خطا یو کار کونه- پهٔ هېره سره کونه- غلطېدنه- پهٔ غلطی کښې-

خطبه:(خُط-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ خطیب خبرې- خطابه-

خطر:(خَ-طَر)اسم- (۱)خطره- (۲)هغه څهٔ چې دَ تباه کېدو او هلاکت سبب جوړېږی- (۲)تاوان- ضرر- زیان- دَ ځانی یا مالی زیان احساس یا امکان-

خطرناک:(خَ-طَر-ناک)اسمِ صفت- مذکر- دَ خطر نه ډک- پُرخطر- دَ خطرې- خطری-

خطره:(خَط-ره)اسم- واحد- مؤنث- وگورئ خطر-

خطری:(خَ-طه-ری)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وگورئ خطرناک-

خط کش:(خَط-کَش)اسم- پیمانه- هغه آله چې پهٔ کاغذ یا لرگی پرې کرښې راکښلے کیږی- (افغانستان)-

خط کشی:(خَط-کهٔ-شی)اسمِ- کرښې اېستنه- کرښې راکښنه- لیکې جوړونه- کیلې راکښنه- خطونه اېستنه-

خط گر:(خَط-گر)اسمِ صفت- پهٔ اومو روټیو گُلکاری کونکے- جمع خط گران-

خط مشې:(خَط-مهٔ-شې)اسم- پالیسی- سیاست- کړنلاره- مشی- (افغانستان)-

خطمی:(خَط-می)اسم- خیرو گُل- توته گُله- یو قسمِ بوټے چې ډنډر یې پېړ او لوړ وی او سور او سپین گل لری- همیشه شین وی دَ گُل پاڼې یې پهٔ دارو کښې پکارولے شی- نباتاتی نومِ اېلتهیا آفسی نېلس (ALTHAEA OFFICINALIS)-

خطه:(خِ-طه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زمکې یوه حصه-(۲)ملک-

خطی:(خه-طی)صفت- (۱)دَ خط سره متعلق- قلمی- (۲)هغه کار چې دَ ټیپ نه پس دَ دېوال دَ ښائست او مضبوطیا دَ پاره کولے شی-

خطیب:(خَ-طیب)اسم- واحد- مذکر- خُطبه لُستونکے- خُطبه ویونکے- واعظ- ویاند- جمع خطیبان-

خطیر:(خَ-طیر)اسمِ صفت- ستر- مهم- غټ-

خفا:(خُ-فا)متعلق فعل- پټ- پټ پهٔ پټه- پهٔ پټه-

خفت:(خِ-فت)اسم- سپکاوے- سپکوالے- سپکتیا- سپکه- دَ ثقل ضد-

خفتن:(خُف-تَن)اسم- نماسخوتن- دَ نماسخوتن وخت-

خفقان:(خَف-قان)اسم- (۱)خپگان- خفگان- دَ زړهٔ درزېدنه- یو مرض چې دَ زړهٔ حرکت پکښې تېز شی او زړهٔ ژر ژر ټوپونه وهی- (۲)ډېر زیات وهم- دلگیرتیا-

خفک:(خُ-فک)اسم- خپک- ترلمے- وگورئ خپک-

خفگان:(خَف-گان)اسم- وگورئ خفقان-

خفگی:(خَف-گی)اسم- ناراضگی- خفگان- قهر- غُصه- (م- فارسی)-

خفه:(خَ-فه)اسم صفت- ملال- غمگین- ناراض- سوخت- بې طبعې- قهرېدلے-

خفی:(خَ-فی)صفت- پټ- غلے- ناڅرګند- دَ جلی ضد-

خفیف:(خَ-فیف)صفت- (۱)سپک- (۲)لږ- کم- کم وزنه- (۳)تت-

"ئ" (څې-رل)، "ې"(هې-ره-ول)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وگورئ تشریحات صفحه ۱

خفیه:(خُف-یه)صفت- پټ- پهٔ پړده کښې- پهٔ راز کښې-

خکان:(غ-کان)اسم- کیځے- یو قسم ہېر وړوکے چینجے چې دَ ماشومانو دَ لویو بولو پهٔ ځایٔ کښې کیږی-

خکوټ:(خ-کوټ)اسم- مالیه- باج- اخراج-

خکاړه:(خکا-ړه)اسم- ګټه- سود- فائده- بهبودی- برے- غلبه- فتح- وړ والے-

خل:(خَل)اسم- (۱)مړاوے ګل- (۲)سرکه-

خل:(خَل)اسم- (۱)عقیده- باور- یقین- (۲)اُمید- هیله- (۳)دَ "خال" مُخفّف-

خلا:(خَ-لا)اسم- واحد- مؤنث- تش ځایٔ - تش والے- پهٔ هوا کښې خالی ځایٔ- ېږون- جمع خلاګانې-

خلات:(خَ-لات)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ بادشاه لهٔ طرفه دَ جامو بخشش- پوښ- (۲)هغه پیسې چې دَ لُور دَ وادهٔ پهٔ وخت دَ زوم لهٔ طرفه دَ ناوې ماما ته ورکولے کیږی- (۲)دَ کوژدنې پهٔ وخت پهٔ حاضرو خلقو کښې دَ جینۍ یا دَ هلک دَ پلار لهٔ طرفه دَ پیسو وېشنه-

خلاس پلے:(خَلاس-پهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)املتاس- لاندیس- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ املتاس-

خلاص:(خَلاص)اسم- (۱)خُشے- پرانستے- پرانتے- (۲)ازاد- بې غمه- (۲)ختم- تمام- (۴)وزګار- (۵)انزال-

خلاص مند:(خَلاص-مَند)اسم صفت- واحد- مذکر- اخلاص مند- اخلاصی- (۲)چې پهٔ منصفۍ کښې طرفداری نه کوی-

خلاصوالے:(خَلاص-وا-لے)اسم- (۱) ازاد والے- (۲)بېرته والے- (۲)تماموالے- ختموالے- (۴)بشپړ والے- (۵)وزګار والے-

خلاصول:(خَلا-صَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)ازادول- خُشے کول- خپلې ازادۍ ته پرېښول- (۲)وازول- بېرته کول- (۲)پایٔ ته رسول- تمامول- بشپړول- فېصله کول- (۴)رنخل- (۵)انزالول-

خلاصون:(خَلا-صُون)اسم- (۱)ازادی- ازاد والے- نجات- بچ- (۲)خلاصېدن- دَ جنګ جګړې خلاصونه-

خلاصون:(خَلا-صَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خلاصول-

خلاصونکے:(خَلا-صَ-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خلاصونکی- مؤنث خلاصونکې- وګورئ خلاصول-

خلاصونګ:(خَلا-صَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خلاصول-

خلاصونه:(خَلا-صَ-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خلاصول-

خلاصونے:(خَلا-صو-نے)اسم فاعل- دَ "خلاصول" مصدر نه اسم فاعل- وګورئ خلاصول-

خلاصه:(خَلا-صه)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ "خلاص" مؤنث- وګورئ خلاص-

خلاصه:(خُ-لا-صه)اسم- واحد- مؤنث- لنډون- لنډیز- لنډه- تلخیص-

خلاصه خله:(خَلا-صه-خله)اسم- کوژه- بوزه- دَ ژورې ضد-

خلاصی:(خُ-لا-صی)اسم- واحد- مذکر- (۱)خلاصی- تمبوان، خېمې وغیره لګونکے نوکر- (۲)دَ رېل، جهاز یا کارخانې کار کونکے مزدور-

خلاصېدل:(خَلا-صې-دَل)مصدر لازم- (۱)ازادېدل- ازادی موندل- خُشے کېدل- (۲)وازېدل- بېرته کېدل- (۳)تمامېدل- پایٔ ته رسېدل- بشپړېدل- (۴)رنخل- (۵)انزالېدل- انزال کېدل-

خلاصېدن:(خَلا-صې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خلاصېدل-

خلاصېدنګ:(خَلا-صې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خلاصېدل-

خلاصېدنه:(خَلا-صې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خلاصېدل-

خلاصېدون:(خَلا-صې-دون)حاصلِ مصدر- (۱) خلاصون- ازادېدن- ازادېدنه- (۲)ختمېدنه- سَر ته رسېدنه- (۳)پهٔ ټوپک ډز کول- دَ ټوپک پهٔ ماشه ګُتې کېښول او راخلاصول-

خلاصېدونکے:(خَلا-صې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خلاصېدونکی- مؤنث خلاصېدونکې- وګورئ خلاصېدل-

خلاصېدونے:(خَلا-صې-دو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خلاصېدونی- مؤنث خلاصېدونې- وګورئ خلاصېدل-

خلاصېدهٔ:(خَلا-صې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلاصېدل-

خلاصے:(خَلا-صے)اسم- واحد- مذکر- (۱)خلاصون- ازادی- خپلواکی- خُشے کېدنه- (۲)علاج- حل- چاره-

خلاف:(خِ-لاف)اسم- (۱)مخالفت- وړانے- (۲)دَ موافقت ضد- (۳)دروغ- (۴)نابرابر والے- (۵)سرغړونه-

خلاف بیانی:(خِ-لاف-بَ-یا-نی)اسم- دروغ- لهٔ حقیقته برخلاف بیان-

خلافت:(خِ-لا-فَت)اسم- جانشینی- دَ پېغمبر جانشینی- نیابت- امارت- امامت- (۲)پهٔ مسلمانانو کښې دَ حکومت یو طرز- (۳)دَ خلافت یو تحریک چې هندوستان او نورو اسلامی ملکونو دَ خلافت عثمانیه دَ بحال کېدو دَ پاره چلولے وهٔ- (۴)دَ پیر جانشینی- (۵)دَ پیر دَ طرفه خپل مُرید ته ورکړے شوې ایجازه-

خلاف رفتاری:(خِ-لاف-رَف-تا-ری)اسم- سرغړونه- لهٔ قانون او مقراراتو نه تېرے- (۲)تقصیر- خطا- جُرم-

خلاف ورزی:(خِ-لاف-وَر-زی)اسم- مؤنث- خلاف کونه- اصول ماتونه- قانون ماتونه-

خلاق:(خل-لاق)صفت- (۱)رامنځ ته کونکے- جوړونکے- پېدا کونکے- دَ یو نوی څیز راپېدا کونکے- (۲)دَ خلاقیت لرونکے- (۳)دَ خدایٔ دَ نومونو نه یو نوم-

خلاقه:(خل-لا-قه)صفت- پېدا کونکے- مست کونکے- شتهٔ کونکے-

خلاقیت:(خَل-لا-قی-یَت)اسم- دَ نوی څیز دَ پېدا کولو قدرت- دَ ایجاد او نوی څیز پېدا کولو توان- دَ تخلیق کار-

خلال:(خِ-لال)اسم- (۱)نرے لرګے چې دَ څهٔ څیز پهٔ منځ کښې ابښوے شی- (۲)دَ څهٔ څیز مینځ- (۳)دَ ګُتو تېرونه- دَ چاراندام پهٔ وخت ړیره

کښې ښوندې کُتې تېرونه- (۴)دَ نارنج پوستکے یا کاخره چې نرې نرې پرې شي-

خلا ملا :(خَ-لا-مَ-لا)صفت- (۱)بې ریا- رښتونے- صاف- سپین ویونے- سپینه ویونکے- (۲)ازاد- خمسور-

خلائي:(خَ-لا-ئي)اسم صفت- هوائي- فضائي-

خلباندے:(خَل-بان-دے)صفت- دَ یقین قابل- یقیني- چې یقین پرې شوے وي-

خلبورے:(خُل-بو-رے)اسم- واحد- مذکر- پاټ- بوجه- بورے- خلپوټے- خلپورے- جمع خلبورې-

خلپته:(خَل-پَ-ته)اسم صفت- واحد- مذکر- چپ چاپ- غلے- خاموش- چُپه خُله- چې غږ غوږ نهٔ کوي-

خلپسکي:(خَل-پهٔ-س-کي)اسم- پهٔ خاورو کښې دَ چرګو لګړېدنه-

خلپکې:(خَل-پَ-کې)اسم- جمع- مؤنث- خلپلکې- دَ چرګ لتکې- دَ چرګ ټپلې- پهٔ خاورو کښې دَ چرګ، زرکې، مرز او داسې نورو مرغانو لتې وهنه-

خلپل:(خَل-پل)اسم- (۱)خس وخشاک- خخلې- خاشې پوشی- (۲)دَ کونخلې مېده خاورې- ذرې- خلپلې-

خلپلکې:(خل-په-له-کې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ خلپکې-

خلپلې:(خَل-پَ-لې)اسم- جمع- غرځکې- خسنې- کندیارې-

خلپوټے:(خل-پو-ټے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خلبورے-

خلپورے:(خُله-پو-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خلبورے-

خلپه:(خُل-په)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم ساګ- خرفه- نباتاتي پورټولیکا اولیرېشیا (PORTULACA OLERACEA)-

خلتکه:(خَل-تَ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ بېږیو، سپښتو او بجلو یو قسم لوبه- جمع خلتکې-

خلتکي:(خَل-تَ-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بوځکي- بوجګی-

خلتکی:(خَل-تَ-کی)اسم تصغیر- واحد/جمع- مؤنث- (۱)بوجګی- بوجینګړې- بوځکي- ممیاني- تېلی- ګوټی- (۲)پنجره- وړه شان خلته-

خلتم:(خَل-تَم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خرتم-

خلته:(خَل-ته)اسم- واحد- مؤنث- کوټ- کمیس- کُرتی- کُرته- (۲)خُرجی- کڅوړه- کڅوری- پاکټ- لفافه- خلیته- (۳)سرپوښه ټوکری- جلته- (۴)دَ مرزو دَ ساتلو پنجره- (۵)اُبره- دَ بالښت اچار-

خلتیمي:(خل-تی-مي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ ښځو دَ وېښتو کڅوړه یا خلته- (افغانستان)-

خلجان:(خَل-جانّ)اسم- فکر- اندېښنه-

خلځکے:(خَل-خه-کے)اسم- څرخ لرګے- څرخنکے- جمع خلځکي-

خلچن:(خَل-چَن)صفت- خیرن- خچن- پخن- ناولے-

خلچے:(خَل-چے)صفت- واحد- مذکر- خچن- خیرن- پخن- خلچن-

خلځیرے:(خَل-ځي-رے)اسم صفت- فضول بکواس کونکے- بکواسي- خلځیرې-

خلخالکی:(خَل-خال-کی)اسم- پازیب- پینزیب- (کاکړ)-

خلخل:(خَل-خَل)اسم صفت- واحد- مذکر- لوئ- ارت بیرت- بې اندازې لوئ- بې جوړه غټ- بې طریقې غټ-

خلخلکے:(خَل-خَ-لَ-کے)اسم- واحد- مذکر- ګته کول- کچه کول- ګت لوبه- دَ ژمي یو قسم لوبه چې دَ دوؤ پلو تر مینځه کیږي- دَ یوې پلې یو تن څهٔ څیز پهٔ لاس کښې نیسی او نور مغه څیز پیدا کوي-

خلد:(خُلدّ)اسم- واحد- مذکر- دَ دانې سورے چې وینه زوه پرې راوځي-

خلستر:(خَ-لس-تَر)اسم- زره برستن- زوړ تلتک- زوړ کنځړ- امبارځي- (افغانستان)-

خلص:(خَ-لص)صفت- لنډون- لنډیز- لنډ- تلخیص- تخلیص-

خلص:(خَ-لص)صفت- دَ خالص جمع-

خلط:(خلطّ)صفت- ګډوډ- ګډوله- ګډ- ګډ شوے-

خلع:(خَ-لَع)صفت- (۱)موقوف- لهٔ ځایه لرې شوے- برطرف- (۲)وتل- مغه طلاق ته وائی چې دَ مال پهٔ بدل کښې ورکړے شي-

خلعت:(خَل-عَت)اسم- وګورئ خلات-

خلف:(خَ-لَف)اسم- (۱)خوئ- زوئ- (۲)صالح اولاد- (۳)ځائې نیونکے- (۴)وروستو راتلونکے- جانشین- (م- عربی)-

خلفاء:(خُل-فاء)اسم- جمع- مذکر- دَ خلیفه جمع- خلفیه ګان- قائم مقام جانشینان-

خَلق:(خَلق)اسم- (۱)پیدا کونه- پېدایښت- (۲)خلک- اولس- مخلوق-

خُلق:(خُلق)اسم- (۱)عادت- خوئ- طبیعت- رفتار- سلوک- کړهٔ وړهٔ- (۲)کوزاره- ژوند-

خلقات:(خَل-قات)اسم- دَ خَلق جمع- مخلوق-

خلقت:(خل-قَت)اسم- (۱)پېداوښت- (۲)خوئ- مزاج- طبیعت-

خَلقت:(خَل-قَت)اسم- واحد- مذکر- عالم- اولس- مخلوق- جمع خلقتونه-

خلقت:(خُل-قت)اسم- مروت- خُلق-

خلق تنګي:(خَلق-تنګ-کي)اسم- (۱)زړهٔ تنګېدنه- دغوالے- پهٔ هېڅ څیز ساعت نهٔ تېرېدنه- (۲)دَ زړهٔ لهٔ ناروغی لهٔ کبله زړهٔ تنګېدنه- پهٔ چا دَ زړهٔ دوره راتلنه-

خلق تنګے:(خَلق-تنګ-کے)صفت- واحد- مذکر- زړهٔ تنګے- دغ- مغه څوک چې پهٔ هېڅ څیز ئې ساعت نهٔ تیریږي-

خلقه:(خَل-قه)اسم- واحد- مؤنث- خرقه- شوغه- شوقه- چپنه- جمع خَلقې-

خلقه:(خَ-لَ-قه)اسم- جمع- مذکر- خلق- خلکې- مخلوقات- مخلوق- ګڼ خلق- جورمې جورمې بنیادمان-

خلقي:(خَل-قي)اسم- واحد- مذکر- دَ خلق پارټي رُکن- کمیونسټ- (افغانستان) (۲)مغه کس چې پهٔ معاشي مساوات یقین لري او دَ طبقاتي نظام مخالف وي او دَ مذهبي تعصب نه مُبَراء وي-

خلقي:(خل-قي)اسم- فطري- تني- ذاتي- قدرتي- ازلي- پېدایشي-

ئ (ځي-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

خلقي:(خُل-قي)صفت- خوش خُلقه- خوش خويه- دَ ښو کړو وړو خاوند- خوش اخلاقه-
خلقي:(خَ-لَ-قي)اسم- اولسي- دَ خلقو- دَ خلقو سره متعلق-
خلک:(خَ-لک)اسم- خلق- اولس- وګړي- خلګ-
خلکتي:(خَل-کَ-تي)صفت- خوږ ژبے- هغه څوک چې خوږې پستې خبرې کوي-
خلکه:(خَل-که)اسم- واحد- مؤنث- وړه او ارتبیرت قمیص- هغه قمیص چې ګرېوان ېې خلاص وي- دَ پخوانو مشرانو سرو عامې جامې- خلکي- جمع خلکې-
خلکي:(خَل-کي)اسم- واحد- جمع- مؤنث- وګورئ خلکه-
خلکے:(خَل-کے)اسم- واحد- مذکر- هغه څیز چې دَ غاښونو نه پرې دَ روټۍ یا غوښې ذرې راویستلے شي- غاښ ټومبونے- هغه څیز چې غاښونه پرې خلالوي- جمع خلکي- (افغانستان)-
خلګ:(خَ-لګ)اسم- وګورئ خلک-
خلګي:(خَل-ګي)اسم- سړي- وګړي-
خلګي:(خُل-ګي)اسم تصغیر- واحد/جمع- مؤنث- پېپه- چپه- خُله- زړه، ښائسته او غُنډه مُنډه خُله-
خَلل:(خَ-لَل)اسم- واحد- مذکر- نقص- عیب- ضرر- غش- (۲)فساد- زرانے- اړ- خنډ- خار- پهٔ یو کار سره تباهي راوستنه- (م- عربي)-
خَللي:(خَ-لَ-لي)اسم صفت- (۱)ضرري- تاواني- زیان رسونکے- مُضر- ضرر رسونکے- (۲)هغه څوک چې دَ خلقو پهٔ مېنځ کښې فساد پیدا کوي-
خللي:(خه-له-لي)اسم- ګړینګ- دَ پوزې ټینګې ابهٔ- (کاکړ)-
خلما:(خل-ما)اسم- مؤنث- کلي- غټې-
خلنج:(خَ-لنج)اسم- خسکي توت- بدخونده توت- هغه توت چې دانې او تخم لري-
خلنځه:(خَلن-ځه)اسم- دَ څېړې لویه ونه- دَ نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ څېړې-
خلنوم:(خَل-نوم)اسم- شونډک-
خلواښ:(خَل-واښ)اسم- واحد- مذکر- خلوندنے- شوړه- بوجه- خنجکے- خولبورے- خولپوټے-
خلوت:(خَل-وت)اسم- وګورئ خلات-
خَلوت:(خَلوت)صفت- کاواکه- بې واکه-
خلوت:(خل-وت)اسم- (۱)ګوشه کېدنه- ګوشه ګیرې- خان ته کېدنه- خانته ژالے- خانله والے- (۲)ګوښه- ګوښې- خاني- هغه ځاۍ چې بل څوک پکښې نهٔ وي-
خلوت خانه:(خل-وت-خا-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)خلوت ګاه- دَ چېلې هغه کوټه چې پاک، نېکان او عارفان پکښې ېېخې یواځې پهٔ تنهایۍ کښې عبادت کوي- (۲)دَ چېلې او وظیفې کوټې- (۳)هغه خانګړې کوټه چې ښځه خاوند پکښې یو ځاۍ کېږي-
خلوت ګاه:(خل-وَت-ګاه)اسم- وګورئ خلوت خانه-
خلوت نشین:(خل-وَت-نه-شین)صفت- (۱)پهٔ خلوت کښې ناست- پهٔ چله کښې ناست- (۲)خان لهٔ ګټ کښې ناست-
خلوتي:(خل-وَ-تي)صفت- واحد- مذکر- یواځې- ګوښه نشین- ګوښه-
خلوټے:(خل-وَ-ټے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے ټکے-
خلود:(خَ-لود)اسم- تل تر تله والے- همېشه توب- همېشه والے- جاودانیت-
خلور:(خُلهٔ-ور)صفت- مذکر- چالاک-
خلوص:(خَ-لوص)اسم- (۱)اخلاص- پاکي- سادګي- دَ زړهٔ لهٔ کومې- (۲)خالصیدنه- (م- عربي)-
خلوندونے:(خلون-دَو-نے)اسم- کټ پوزے-
خلونې:(خل-وَ-نې)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو قسم غرځنے بوټے چې دَ چینې پهٔ اندازه دانې نیسي کومې چې نیني کولے شي او بیا خوړلے شي- (افغانستان)-
خلویته:(خل-وي-ته)صفت- تش- کوګ- پړ-
خلویتي:(خل-وي-تي)اسم- پړون- پړ والے- تش والے- (افغانستان)-
خلویتے:(خل-وي-تے)صفت- مذکر- بکواسي- ډېرې خبرې کونکے- کړتن-
خله:(خُلهٔ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شونډې، ژبه، غاښونه ټول چې پهٔ کوم چوکاټ کښې ګېر وي- (۲)پېپه- کوکې- کوګې-
خله بکي:(خله-به-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ اُباسي-
خله پټے:(خله-پهٔ-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- خُلهٔ چوپے- غلے- خاموش طبع- چپ- حیران- پهٔ قلاره- خله چُپ- (دَ ډېر لهجه)هغه څوک چې ډېر زیات نهٔ وییږي او غلے طبیعت لري-
خله پهٔ خلهٔ:(خُله-پهٔ-خُلهٔ)اسم مرکب- (۱)ډېر نژدې- غاړه غټې- غاړه پهٔ غاړه- (۲)مینه کونه-
خله ور:(خُله-وَر)اسم صفت- مذکر- دَ ښې ژبې خاوند- هغه څوک چې ښې او فصیحې خبرې کوي- خبر لوځ- زیاند-
خلي:(خلي)صفت- یواځې- تنها-
خلیته:(خَ-لي-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خلته-
خلیج:(خَ-لیج)اسم- واحد- مذکر- پهٔ دریاب یا سمندر کښې دَ اُبو هغه برخه چې پهٔ وچه کښې ورانډې تلې وي- لکه دَ بنګال خلیج-
خلیخ:(خَلیخ)اسم- واحد- مذکر- شرمنده- شرمونے- شرمېدلے-
خلیخول:(خَلي-خَ-وَل)مصدر- شرمول- شرمنده کول- ملامتول- سرښکته کول-
خلیخون:(خَلي-خَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خلیخول-
خلیخونکے:(خَلي-خَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خلیخونکي- مؤنث خلیخونکې- وګورئ خلیخول-
خلیخونګ:(خَلي-خَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خلیخول-
خلیخونه:(خَلي-خَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خلیخول-
خلیخې:(خلي-خې)اسم- واحد- مؤنث- یوه لوبه چې خلق ېې اکثر پهٔ ژمي

کښې په حجرو کښې کوی- خلیخی- چکه-

خلیخېدل:(خلی-خې-دَل)مصدر لازم- شرمېدل- ملامت کېدل- سرښکته کېدل- شرمنده کېدل-

خلیخېدن:(خلی-خې-دَن)حاصل مصدر - وګورئ خلیخېدل-

خلیخېدنګ:(خلی-خې-دَنګ)حاصل مصدر - وګورئ خلیخېدل-

خلیخېدنه:(خلی-خې-دَه-نه)حاصل مصدر - وګورئ خلیخېدل-

خلیخېدونکے:(خلی-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خلیخېدونکی- مؤنث خلیخېدونکې- وګورئ خلیخېدل-

خلیخېده:(خلی-خې-دَه)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلیخېدل-

خلیخی:(خلی-خی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خلیخی-

خلیدل:(خَ-لی-دَل)مصدر لازم- غړېدل- چوکه کېدل- (م- فارسی)-

خلیدن:(خَ-لی-دَن)حاصل مصدر - وګورئ خلیدل-

خلیدنګ:(خَ-لی-دَنګ)حاصل مصدر - وګورئ خلیدل-

خلیدنه:(خَ-لی-دَه-نه)حاصل مصدر - وګورئ خلیدل-

خلیدونکے:(خَ-لی-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خلیدونکی- مؤنث خلیدونکې- وګورئ خلیدل-

خلیده:(خَ-لی-دَه)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خلیدل-

خلیفه:(خَ-لی-فه)اسم- واحد- مذکر- (۱)قائم مقام- دَ پیغمبر جانشین- امام- (۲)دَ خلافت مشر- (۳)دَ پیر په ځای ناست- (م- عربی)-

خلیق:(خَ-لیق)اسم- (۱)لائق- وړ- سزاوار- (۲)دَ ښه خوئ او خلق خاوند- دَ ښه خصلت خاوند- دَ ښو کړو وړو څښتن- (م- عربی)-

خلیل:(خَ-لیل)اسم- واحد- مذکر- رښتونے ملګرے- دوست-

خلیل الله:(خَ-لی-لُل-لا)صفت- دَ خدائ تعالیٰ دوست- دَ حضرت ابراهیم علیه السلام لقب-

خلیلی:(خَ-لی-لی)اسم- یو قسم انګور چې لهٔ نورو انګورو نه مخکښې پخیږی- (افغانستان)-

خلی ملی:(خَ-لی-مَ-لی)اسم مرکب- (۱)خل پل- خلامچا- (۲)انکار-

خلې خلې پوری:(خلې- خلې-پو-ري)اسم صفت- تر خلې خلې- انجاغړی- کښېمنډلے- نوک دَ سوکه-

خلبت:(خَ-لبت)اسم- مذکر- (۱)شک- (۲)ارمان- (۳)کمی-

خلبوته:(خلې-و-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خلویته- (افغانستان)-

خلی خلی:(خَ-لی-خَ-لی)اسم صفت- جدا جدا- بېل بېل- خان خان له- بېلا بېل-

خلے:(خَ-لے)اسم- دَ ګل غټې- کلی-

خلے:(خهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- خس- ډکے- وچوکے- ککه- خولکے- ډېر وړوکے لرګے-

خم:(خَم)اسم- واحد- مذکر- لوئ خاورین لوښے چې سرکه، اُبهٔ او شراب پکښې اچولے کیږی- او کله کله پکښې رنګریزان جامې یا نور څیزونه هم رنګوی- جمع خُمونه-

خمار:(خُ-مار)اسم- دَ شرابو دَ نشې دَ ماتېدو حالت- دَ نشې اثر- (م- عربی)-

خماری:(خُ-ما-ری)اسم صفت- (۱)دَ نشې نه ډک- مستانه- (۲)ښائسته- سرې- (اکثر دَ سترګو دَ صفت په توګه راځی)-

خماری:(خَ-ما-ری)اسم- واحد جمع- مؤنث- شوتالو- شلتالو- یوه مېوه- نباتاتی نوم پرونس (PRUNUS) یا امائیګډېلس پرسیکا (AMYGDALUS PERSICA)-

خمازوره:(خَ-ما-زُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- خمزوره- شپیانګه- خمزری- خمزورے- خمازورې- دَ خر رنګ پاڼې لرونکې یوه مېوه دار بوټے چې دَ ببرې موره وی، نری نری دانې لری او حکیمان ئې دَ ګېډې دَ درد دَ پاره پکاروی- جمع خمازورې-

خمازوری:(خَ-ما-زو-ری)اسم- وګورئ خمازوره-

خمازیرې:(خَ-ما-زی-رې)اسم- جمع- مؤنث- یو قسم مېوه- (افغانستان)-

خمبچه:(خم-بهٔ-چه)اسم- مؤنث- دَ چرګ پنجه-

خمبه:(خم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱) ګودام- ګدام- زېرمه تون- (۲)غټ کندو- دَ غلې ساتلو او ایښودلو لوئ لوښے- (کندو- ترټه)(۳)ګودرې- دَ کوټې چې- دَ کوټې وسې-

خمبیر:(خم-بیر)اسم- خسبیره- خومبره- خریمه مایه- هغه لونډهٔ اوړهٔ چې دَ اوړو دَ اخښلو په وخت په اوړو کښې ګډولے شی-

خمبیرک:(خم-بی-رک)اسم- دَ سپرلی موسم کښې راټوکېدونکے یو قسم ساګ-

خمبیر کړ:(خم-بیر-کړ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خمبیر-

خمپاره:(خم-پا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ارت- فراخ- لوئ- (۲)یو قسم وړوکې توپه- (۳)دَ کاریز دَ وړومبی کوهی دَ خلې ویاله- (افغانستان)-

خمت:(خَ-مَت)صفت- غوښن- څرب-

خمتا:(خَم-تا)اسم- واحد- مؤنث- خامتا- بېتی- کرباس- خنتو- خنتا- په کډی جوړه شوې غټه کپړه-

خمتینه:(خم-تی-نه)اسم- واحد- مؤنث- دری- سترنجی- جمع خمتینې-

خمټ:(خَ-مَټ)صفت- (۱)چاق- چاغ او شلنړ- څرب- غټ- تیار- غټ پټ- (۲)سپین- ښائسته-

خمټوب:(خَ-مټ-توب)اسم- چاقوالے- څربوالے- تیاروالے- غټوالے-

خمټول:(خَ-م-ټ-ول)مصدر متعدی- چاقول- تیارول- څربول-

خمټون:(خَ-م-ټ-ون)حاصل مصدر - وګورئ خمټول-

خمټونګ:(خَ-م-ټ-ونګ)حاصل مصدر - وګورئ خمټول-

خمټونکے:(خَ-م-ټ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خمټونکی- مؤنث خمټونکې- وګورئ خمټول-

خمېونه:(خ-م-ېَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمېول-

خمتې:(خ-م-تې)اسم- جمع- مؤنث- غټې غټې نمرې- ګېې-

خمتېدل:(خ-م-تې-دل)مصدر لازم- ځربېدل- چاقېدل- غټېدل- تیارېدل-

خمتېدن:(خ-م-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خمتېدل-

خمتېدنګ:(خ-م-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خمتېدل-

خمتېدنه:(خ-م-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمتېدل-

خمتېدونکے:(خ-م-تې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خمتېدونکی- مؤنث خمتېدونکې- وګورئ خمتېدل-

خمتېدهٔ:(خ-م-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خمتېدل-

خمڅه:(خَه-مهٔ-څه)اسم- واحد- مؤنث- خمڅه- دَ کرتو مښنه- دَ قرتو سولونه- جمع خمڅې-

خمچ:(خ-مچ)اسم- باجره- خمچه- دَ غلې يو قسم- دَ باجرې روټۍ- جمع خمچې-

خمچکې:(خم-چ-کې)اسم- جمع- مؤنث- نوکارې- شوکارې- شونګارې- ښونګارې- ځکونډارې- (افغانستان)-

خمچه:(خ-مهٔ-چه)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ چرګ پنجه- منګله- (۲)کچه ګټه- (۳)خمچ- باجره- (۴)دَ کوټو او سپرو وهلې غله- (افغانستان)-

خمچين:(خم-چين)اسم- چابک- متروکه-

خمچې:(خ-مهٔ-چې)اسم- جمع- مؤنث- باجره- دَ باجرې روټۍ-

خمچی:(خ-م-چی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کچې ګټه- کچنۍ ګټه- خچنه ګټه- خچې ګټه-

خمڅونی:(خم-څو-نی)اسم- جمع- مذکر- څاپولی- دَ واورې ټکرې-

خمڅه:(خ-مهٔ-څه)اسم- خمڅه- دَ کرتو مښنه- دَ کرتو مړنه- دَ کرتو سولونه- (افغانستان)-

خم خانه:(خم-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- شراب خانه- خم کده- دَ شرابو ځاې- جمع خُم خانې-

خمدار:(خم-دار)صفت- واحد- مذکر- لچکدار- کوږ- مؤنث خمداره- جمع خمدارې-

خمر:(خ-مر)اسم- شراب- مره نشه وره مائع- (م- عربی)-

خمری:(خم-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کټوی- خمبری- (۲)کچکول- (۳)دَ فقیرانو دَ پخلی لوښے- (۴)دَ نمونځ کولو موسله-

خمزری:(خم-ز-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ خمازوره-

خمزورے:(خم-زو-رے)اسم- وګورئ خمازوره- (افغانستان)-

خمس:(خ-مس)صفت- پينځهٔ- پينځمه برخه-

خمسارې:(خم-سا-رې)اسم- جمع- مؤنث- دَ ښځو ځپلی چې دَ تیلې کار پرې شوے وی-

خمسور:(خم-سور)اسم- مذکر- خزان- منے- دَ منی سَر-

خمسور:(خم-سور)صفت- مذکر- (۱)ازاد- (۲)جفت- جوړه- ملګرے-

خمسورتوب:(خم-سور-توب)اسم- مذکر- (۱)خمسورتیا- خمسوروالے- ازادی- (۲)جُفتوالے- جوړه والے- ملګرتیا- ملګرتوب-

خمسورتیا:(خم-سور-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ خمسورتوب-

خمسوروالے:(خم-سور-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ خمسورتوب-

خمسورول:(خم-سو-ر-ول)مصدر متعدی- (۱)ازادول- (۲)جوړه کول- ملګرے کول-

خمسورون:(خم-سو-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ خمسورول-

خمسورونګ:(خم-سو-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خمسورول-

خمسورونه:(خم-سو-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمسورول-

خمسورونکے:(خم-سو-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خمسورونکی- مؤنث خمسورونکې- وګورئ خمسورول-

خمسوری:(خم-سو-ری)اسم- ازادی- (۲)ملګرتیا- ملګرتوب-

خمسورېدل:(خم-سو-رې-دل)مصدر لازم- (۱)ازادېدل- (۲)جوړه کېدل- ملګرے کېدل-

خمسورېدن:(خم-سو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خمسورېدل-

خمسورېدنګ:(خم-سو-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خمسورېدل-

خمسورېدنه:(خم-سو-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمسورېدل-

خمسورېدونکے:(خم-سو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خمسورېدونکی- مؤنث خمسورېدونکې- وګورئ خمسورېدل-

خمسورېدهٔ:(خم-سو-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خمسورېدل-

خمسورے:(خم-سو-رے)اسم- (۱) ازاد- خپلواک- (۲)ملګرے- جفت- سيال- جوړه-

خمسوز:(خم-سوز)صفت- خام سوختهٔ- خام سوز- نیم پُخته- کچه- نیم پوخ-

خمسه:(خم-سه)صفت- هغه غنم یا اربشې چې ایله راشنهٔ شوی وی او دَ زمکې مخ ئې پټ کړے وی- (افغانستان)-

خمسه:(خم-سه)اسم عدد- پينځهٔ- دَ پينځو عدد(۲)مخمس- پينځهٔ ګونے- (م- عربی)-

خمکاره:(خم-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ زرو دَ تارونو دَ ګنډلو يو قسم کشیده کاری-

خم کده:(خم-ک-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خُمخانه-

خملی:(خم-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لنډې- بې کاره ښځه- (کاکړ)-

خملے:(خم-لے)اسم- واحد- مذکر- ګرېنګ- قتې چې لهٔ پوزې راخوړند وی- دَ چا رابهېدلې پوزه- جمع خملی-

خمن:(خ-من)صفت- مذکر- تاو راتاو- کوږ- پېچلے- (افغانستان)-

خمندک:(خ-من-دک)اسم- مذکر- خمندکه- خمنډک- کونے- چیچړی- کونډے- منګوړ- يو قسم حشره چې دَ ګډو بزو پهٔ څرمن پورې نښتې وی او وینه

ترې ښيښي- جمع خمندکې-

خمندکه:(خ-من-ده-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خمندک- جمع خمندکې-

خمنړ:(خ-منړ)صفت- مذکر- شلنړ- چاق- مزې- څرب- خمټ-

خمنړک:(خ-من-ړک)اسم- مذکر- وګورئ خمندک-

خمنول:(خ-م-ن-ول)مصدر متعدی- کړول- تاتول- لنړی کول- (افغانستان)-

خمنون:(خ-م-ن-ون)حاصل مصدر- وګورئ خمنول-

خمنونکے:(خ-م-ن-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خمنونکی- مؤنث خمنونکې- وګورئ خمنول-

خمنونګ:(خ-م-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خمنول-

خمنونه:(خ-م-ن-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمنول-

خمنېدل:(خ-م-نې-دل)مصدر لازم- کړېدل- لنړی کېدل- تاتېدل-

خمنېدن:(خ-م-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خمنېدل-

خمنېدنګ:(خ-م-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خمنېدل-

خمنېدنه:(خ-م-نې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خمنېدل-

خمنېدونکے:(خ-م-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خمنېدونکی- مؤنث خمنېدونکې- وګورئ خمنېدل-

خمنېده:(خ-م-نې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ خمنېدل-

خموچم:(خ-مو-چم)صفت- مذکر- (۱)چلبازی- چمبازی- چلوټی- ټګی برګی- (۲)دوکه- فرېب- (۳)نازو نزاکت- (افغانستان)-

خمودې:(خ-مو-دې)اسم- جمع- مؤنث- يو قسم وریږې- کمودې- نرې وریږې-

خمول:(خم-ول)اسم- واحد- مذکر- ورک نومی- بې نومه کېدل- (م- عربی)-

خموله:(خ-مو-له)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کور وور- وران- (۲)ورانکارے- شرری- پساتی- فسادی-

خميخ:(خ-ميخ)صفت- وګورئ خمن- (افغانستان)-

خمير:(خ-مير)صفت- خمبير- خمبيره- د اوړو تومنه- خومبره- خريمه- (۲)خمير مائع- د پتيره اوړو ضد-

خميرکی:(خ-ميو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د مالګې اينودلو منګوټے- (افغانستان)-

خميرول:(خ-مي-ر-ول)مصدر- خمبيره کول-

خميرون:(خ-مي-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ خميرول-

خميرونکے:(خ-مي-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خميرونکی- مؤنث خميرونکې- وګورئ خميرول-

خميرونګ:(خ-مي-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خميرول-

خميرونه:(خ-مي-ر-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ خميرول-

خميره:(خ-مي-ره)اسم- واحد- مؤنث- خمبير- خمبيره- مايه- (۲)تومنه- جمع خميرې-

خميرېدل:(خ-مي-رې-دل)مصدر لازم- خمبيره کېدل-

خميرېدن:(خ-مي-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خميرېدل-

خميرېدنګ:(خ-مي-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خميرېدل-

خميرېدنه:(خ-مي-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ خميرېدل-

خميرېدونکے:(خ-مي-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خميرېدونکی- مؤنث خميرېدونکې- وګورئ خميرېدل-

خميرېده:(خ-مي-رې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ خميرېدل-

خميز:(خ-ميز)صفت- (۱)کوږ- (۲)کږېدونکے-

خميس:(خه-ميس)اسم- مذکر- د زيارت ورځ-

خنات:(خ-نات)اسم- د خيانت عاميانه ترأت-

خناری:(خ-نا-ری)اسم- (۱)خنې- خونې- (۲)خناوران-

خنارينه:(خنا-ړي-نه)اسم- ځيرې کونه- داړنه- ځيرونه- (۲)خناورتوب-

خنازير:(خ-نا-زير)اسم- (۱)د خنزير جمع- (۲)د غاړې يا څټ انځيری-

خناس:(خن-ناس/خ-ناس)اسم- شيطان- په زړه کښې وسوسه اچونکے- (م- عربی)-

خناق:(خ-ناق)اسم- (۱)د مرۍ يو قسم بيماری چې زيات تر يې ماشومانو ته د پينځو کالو تر عمره پورې د لګېدو خطره وی- ډېفتېريا- د ستونی مرض- (۲)ازغی- (۳)د مرۍ دانه-

خنبه:(خم-به)اسم- واحد- مؤنث- خمبه- ترټه- د غلې دانې ستر کندو- جمع خنبې-

خن ټېرے:(خن-ټې-رے)اسم صفت- منجيله- تار راتاو- راتاو کړے شوے غنډ مند- جمع خن ټېری-

خنثی:(خن-ثا)صفت- نرښځے- ايجړا- نرکټ- ميجړا-

خنجار:(خن-جاړ)صفت- ګران- دشوار-

خنجاره:(خن-جا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کونجاړه- کل- (۲)د شمخو پړړی- (۳)ابېر والے- ببر توب- سپسن والے- چپشن والے- ځلېستن والے- جمع خنجاړې-

خنجاری:(خن-جا-ړی)صفت- خنجړا- خانچړا- ورانه شوې ژوله- چخړی- وګورئ خانچړا-

خنجاړے:(خن-جا-ړے)صفت- خشکے- بې سره- لېړ-

خنجانی:(خن-جا-نی)اسم- په ابو يا بهېدونکی شی کښې خاشې- ناپاکه مايع- (کاکړ)-

خنجر:(خن-جر)اسم- يو قسم چاړه چې دواړه مخه يې تېره وی- جمع خنجرونه-

خنجرخطی:(خن-جر-خ-طی)اسم- هغه کپړه چې د توړو په شان پرې کړې ورې کرښې ټاپه شوی وی- خنجری- (افغانستان)-

خنجری:(خن-ج-ری)اسم- وګورئ خنجرخطی- (افغانستان)-

خنجری:(خن-ج-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ خنجرې-

ئ (ځی-رل)، ي (مې-ره-ول)، ې (پيا-لې)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

خنجرے:(خَن-ج-رے)اسم- مذکر- دَ باجرې په شان غله چې پخې شوې وړوې ته يې خنجرې وائي- (افغانستان)-

خنجړا:(خَن-ج-ړا)اسم- وګورئ خنجاړې-

خنجک:(خَن-جَک)اسم- واحد- مذکر- دَ ټوپک او تماچې يو خاص کالے-

خنجک:(خَن-جَک)اسم- شنې- شئې- نينجک- شېداني- يوه غرڅنې وَنه چې مېوه يې غوړ لرې- دَ کب نيولو چنګک- (افغانستان)-

خنجک:(خَن-جَک)اسم- (۱)برګ کډ- برګ پسه- (۲)چنګک- کنجک- نرکوش- نيځک- خنجکے-

خنجکې:(خن-ج-کې)اسم- جمع- مؤنث- ترپکې- ټوپونه- خېزکې- ټوپکې- ټُندکې- ټوپنډې-

خنجکے:(خن-ج-کے)اسم- وګورئ خنجک (۲)-

خنجے:(خن-جے)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوار- ټپ- (۲)حقير- ذليل- (۳)ګنجے وړے-

خنخر:(خَن-خَر)اسم- واحد- مذکر- خنزير- سربښکتے- سُوَر- بور- بَد خناور- جمع خنخران-

خنخې:(خَن-خې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ ځاروی دَ چجو غوښه-

خنزير:(خَن-زير)اسم- سرکوزے- خوک- سوېر- بد خناور- خنخر-

خند:(خَند)اسم- (۱)دائره- ګرده ليکه- (۲)پراک- ښکاره- دَ ببړيو لوبه چې په خطونو کښې کېږی- (افغانستان)-

خندا:(خَن-دا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ خوشحالئ، دَ ګپ شپ يا دَ عامو خبرو کولو په وخت دَ شونډو غوړېدنه چې کله کله دَ خُلې نه ورسره غږ هم راخيژی- دَ ژړا ضد- (۲)رخشند- ريشخند- ملنډې- پيشاړه- پيسخند- جمع خنداګانې-

خندا برچا:(خن-دا-بَره-چا)اسم مرکب- (۱)خندا برقا- دَ ګېو کسانو په برق برق خندا- (۲)پچموزې- ټوقې- ملنډې- ټوقې ټقالې-

خنداګلے:(خَن-دا-ګَ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه کس چې همېشه يې له خندا نه خُله ډکه وی-

خندان:(خن-دان)صفت- خنداوو- خوشحال- خنده رويه-

خندا ناک:(خَن-دا-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- خندونک- خنداګلے-

خندانه:(خن-دا-نه)صفت- اباد- بارونقه- ښه ښکاريدونکې/ښکاريدونکے-

خنداوو:(خن-دا-وو)صفت- خنده رويه- خوشحال- ويال- مُسکے- ورين- خندان-

خندرکے:(خند-رَ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګلهانګ رسے- (۲)يو قسم ګل- (افغانستان)-

خندق:(خَن-دَق)اسم- واحد- مذکر- خندکے- خنده- خندوکے- خندے- يو قسم ښکاری سپے چې ګيدړو وغيره پسې غارونو ته ننوځی-

خندک:(خن-دَک)اسم- (۱)منډ- کړی- خندق- کنده- هغه ژور ځائې چې پخوا به دَ کور کلی يا دَ ښار په خواؤ شا کښې دَ دشمن دَ مخ نيوی دَ پاره کنستهٔ کېدهٔ- (۲)ژور ځائې- ژووره کنده- مُردار ډنډ- هغه ژور ځائې چې ګنده اُبهٔ پکښې ودرېږی- جمع خندکونه- (۳)دېوال-

خندکې:(خَن-دَ-کې)اسم- مؤنث- خندا- (دَ ماشومانو په ژبه)-

خندکے:(خَن-دَ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ خندقے- (۲)وګورئ خندرکے- جمع خندکې-

خندل:(خَن-دَل)مصدر- (۱)شونډې غوړېدل- موسېدل- خندا کول- (۲)ريشخند وهل- ملنډې کول- ټوقې کول- پيشاړې کول- (۳)خوشحالی ښودل- خوشحالېدل- دَ خوشحالئ څرګندول-

خندلے:(خَن-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خندلی- مؤنث خندلې- وګورئ خندل-

خندنه:(خَن-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خندل-

خندنی:(خَن-دَ-نی)صفت- خراب- بې کاره- بې قيمته-

خندنې:(خَن-دَ-نې)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)خراب- خراپ- بې ځاندې- بې کاره- بې قدره- کم قيمته- سپک سپاند- (۲)دَ خندنے مؤنث دَ خندا لائقه-

خندنے:(خَن-دَ-نے)صفت- (۱)دَ خندا لائق- دَ خندا وړ- دَ خندا- (۲)بې غېرته- بې عزته- بې ارزښته- چټی- خشے- (۳)دَ مېړنی ضد- (۴)ټوقی- ټوقمار- خندونکے- سندرغاړے-

خندول:(خَن-دَ-وَل)مصدر- (۱)په خندا راوستل- خندا وروستل- مُسکے کول- مسکول- (۲)خوشحالول-

خندولے:(خَن-دَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خندولی- مؤنث خندولې- وګورئ خندول-

خندون:(خَن-دَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خندول-

خندونکے:(خَن-دَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خندونکی- مؤنث خندونکې- وګورئ خندول-

خندونک:(خَن-دَ-ونک)حاصل مصدر- وګورئ خندول-

خندونه:(خَن-دَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خندول-

خندوی:(خَن-دو-ی)صفت- ارت-

خنده:(خَن-ده)اسم- (۱)خندرکے- خندے- خندکے- يو قسم ښکاری سپے- (۲)خوانده-

خنده رويه:(خَن-ده-رو-يه)صفت- واحد- مذکر/مؤنث- وګورئ خندان-

خنده وينے:(خَن-ده-وی-نے)صفت- خوشحاله- خنده رويه-

خندی:(خَن-دی)اسم- ساتلے شوے-

خنديل:(خَن-دی-يل)مصدر- ساتل- پټ ساتل-

خندېدل:(خَن-دې-دَل)مصدر- (۱)خندل- په خندا راتلل- خندا کول- په خندا خُله خلاصول- مُسکی کېدل- مُسکېدل- مُسېدل- (۲)خوشحالېدل- خوشحاله کېدل-

خندېدلے:(خَن-دې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع- خندېدلی- مؤنث

خندېدلې- وګورئ خندېدل-

خندېدن:(خَن-دې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خندېدل-

خندېدنګ:(خَن-دې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خندېدل-

خندېدنه:(خَن-دې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خندېدل-

خندېدونکے:(خَن-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خندېدونکي- مؤنث خندېدونکې- وګورئ خندېدل-

خندېدهٔ:(خَن-دې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي اسمتراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خندېدل-

خندې:(خَن-دې)اسم- خندا- رېشخند- پيشارې- ملنډې- مسخرې-

خنړ:(خَنړ)اسم- واحد- مذکر- خرے- دَ چرګ دَ پښې مونړ- (۲)دَ وَنې زخه- دَ وَنې غټه- (۳)سخت او کلک ازغے- خريزکے- خنړوکے- (۴)مشکل- ستونځه- (۵)ټينګ- تېز- ټينګ کړوبے-

خنړاپس:(خَن-ړا-پس)صفت- هغه سړے چې دَ پوزې ئ قڼ بهيږي- ګړينګن-

خنړک:(خَن-ړک)اسم- وګورئ خندک- (۲)خنړل- خنړه-

خنړک:(خَن-ړک)اسم- دَ ملکانو يوه لوبه-

خنړکے:(خَن-ړ-کے)اسم صفت- غُنډ مُنډ- لنډ قدے- ټيټ قدے- ټيټکے- هغه څوک چې دَ وَنې نه چيت وي- چيت-

خنړل:(خَن-ړل)اسم- (۱)خنړه- (۲)نر زرک- دَ زرکې نر- زرک- خنړک- خنړيل- سائنسي نوم الېکټوريئس ګريکا (ALECTORIUS GRACCA)-

خنړلے:(خَن-ړ-لے)صفت- واحد- مذکر- پټکے- منډرے- لنډے- خنړے- جمع خنړلي-

خنړ منړ:(خنړ-منړ)صفت- واحد- مذکر- (۱)خمېټ- چاغ- شلنډ- څرب- (۲)خړلے-

خنړن:(خَن-ړن)اسم- (۱)کلک او زيږ لرګے- خنړين- (۲)غټې لرونکے يو بوټے چې دَ زهرو دَ اثر لرې کولو دَ پاره پکارولے شي-

خنړن:(خَن-ړن)اسم- واحد- مذکر- نرکچور- خېلې خېلې بوټے چې په فارسي کښې ورته "زرنباد" وائي- "نباتاتي نوم کُرکومه زېرم بټ" (CURCUMA ZERUMBET)-

خنړه:(خن-ړه)اسم- (۱)بندېز- دَ وَنې غټه- سخت ازغے- (۲)مونړ- بُنياد- اساس- (۳)وګورئ خنړل-

خنړيل:(خَن-ړيل)اسم- خنړه- خنړک- خنړل- نر زرک- دَ زرکې نر- سائنسي نوم دَ پاره وګورئ خنړل-

خنړيل:(خَن-ړيل)اسم- خړل- غټ سپے-

خنړين:(خَن-ړين)اسم- وګورئ خنړن-

خنړے:(خَن-ړے)صفت- وګورئ خنړلے-

خنړے:(خَن-ړے)اسم- سپے-

خنړے:(خَن-ړے)صفت- غټې غټې- خنړ دار-

خنصر:(خَن-صَر)اسم- کچې ګټه- زړه ګټه- خچې ګټه- خمچه ګټه- کوچنۍ ګټه- خچنه ګټه-

خنک:(خ-نک)صفت- (۱)سوړ- يخ- (۲)واه واه-

خنګ:(خَنګ)اسم- کرنګ- منجمد- کلک- سخت- وچ کلک- مؤنث خنګه- جمع مؤنث خنګې-

خنګ:(خَنګ)اسم- شرمېدلے- خجل- پښيمان- ستومانه- پښېمانه-

خنګ:(خَنګ)اسم صفت- واحد- مذکر- سپين آس-

خنګ توب:(خَنګ-توب)اسم- خجالت- شرمندګي- خنګتيا- پيکه کېدهٔ-

خنګتيا:(خَنګ-تيا)اسم- وګورئ خنګ توب-

خنکر:(خَن-کړ)اسم- واحد- مذکر- بدي- شرارت- شېطاني- ورانے-

خنګره:(خَنګ-ره)اسم- (۱)دَ سَر پخه- دَ سرسبوسک- (۲)دَ غاښونو منګ- دَ غاښونو خيرے- (۳)دَ سَموار يا چايجوش منګ- څخسوړے- (۴)کوونے- کوولے-

خنګرې:(خَنګ-رې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ماکو- بې لښې مچې-

خنګرے:(خَنګ-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې جولاګان ئ دَ اودلو دَ پاره پکاروي- جمع خنګري- (افغانستان)-

خنګول:(خَنګ-ګ-وَل)مصدر- خجلول- شرمول- خړول- خړکول- پړول-

خنګون:(خَنګ-ګ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګول-

خنګونکے:(خَنګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خنګونکي- مؤنث خنګونکې- وګورئ خنګول-

خنګونګ:(خَنګ-ګ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګول-

خنګونه:(خَنګ-ګ-وَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګول-

خنګه:(خَنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- آسپه- جمع خنګې-

خنګېدل:(خَنګ-ګې-دَل)مصدر لازم- خجل کېدل- شرمېدل- خجلېدل- خړېدل- خر کېدل-

خنګېدن:(خَنګ-ګې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګېدل-

خنګېدنګ:(خَنګ-ګې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګېدل-

خنګېدنه:(خَنګ-ګې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خنګېدل-

خنګېدونکے:(خَنګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خنګېدونکي- مؤنث خنګېدونکې- وګورئ خنګېدل-

خنکے:(خَن-کے)اسم- لومه- دَ دام الغه(حلقه)-

خنه:(خنه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پښو ږېره- سنګ پائ- هغه زړه تيږه يا تېږهٔ ټيکرے چې په حمام کښې پرې خلق دَ پښو خيرے صفا کوي جمع خنې- (افغانستان)-

خنيکه:(خ-نی-که)اسم- سارهٔ- سړتيا- يخني-

خنې خنې:(خَنې-خَنې)اسم صفت- مؤنث- ريزه ريزه- پوټې پوټې- بسمې بسمې- ريښې ريښې- ګارې ګيټې- پراټه کول- بوسکرې وکښل-

خنے:(خ-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)غرنۍ مره- غرڅنے منږک- خنے- خونے- (۲)دَ نَس خاليګاه-

"ی" (څې-رل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

خڼاپس:(خ-ڼا-پس)اسم- کړينګن- کړنګن- هغه سړے چې دَ پوزې نه يې هر وخت کړينګ ځاځي-

خڼ خڼ:(خڼ-خڼ)اسمِ صوت- ګڼ ګڼ- پهٔ پوزه کښې خبرې-

خڼ خڼے:(خڼ-خ-ڼے)صفت- واحد- مذکر- پهٔ پوزه کښې خبرې کونکے- جمع خڼ خڼي- مؤنث خڼ خڼې-

خڼسنو:(خڼ-سنو)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- وګورئ خڼسو-

خڼسو:(خڼ-سو)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- خڼسنو- پواړه ښځه- ناولې او ککړه ښځه-

خڼے:(خ-ڼے)صفت- واحد- مذکر- پهٔ پوزه کښې خبرې کونکے- جمع خڼي-

خو:(خو)اسم- دروغ- غلطي- چل- (پهٔ لوبو کښې) دروغ او چل- (پهٔ معامله کښې)بدعهدي او ژبه ماتونه-

خو:(خو)اسم- خپه- لګووني- يرې- درګيران- يړې- شونټې- يو قسم اور اخستونکې ماده چې دَ خټې وښو او دَ ونې پوستکي نه جوړولے شي- (۲)دَ ګنې يو قسم- (۳)يو تورے چې دَ "ليکن" او "مګر" پهٔ معنیٰ کښې راځي- کله کله دَ استثنیٰ معنیٰ هم ورکوي- (۴)عيب- نقص- (۵)شک-

خوا:(خوا)اسم- (۱)طرف- لورے- سمت- پلو- اړخ- مخه- (۲)پوجې شوې زمکه- دَ خشاک نه پاکه زمکه- دَ کرلو دَ پاره پاکه زمکه- (۴)رابطه- اړيکه- (۵)علاقه-

خوا:(خوا)اسم- خو- يو اور اخستونکې ماده- (افغانستان)-

خوا:(خوا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طبع- طبيعت- زړهٔ- (۲) خوامش- اشتها- ارزو- ميله- (۳)خوښه-

خوابد:(خوا-بد)اسمِ صفت- واحد- مذکر- مخالف- ناراض- خوابدلے- خوابدے- خفه- مرور- خواپټه-

خوابدوالے:(خوا-بد-وا-لے)اسم- مذکر- خفګان- خپګان- زړهٔ بدوالے- زړهٔ بدے- خپه توب- مرورتيا-

خوابدي:(خوا-ب-دي)اسم- مؤنث- زړهٔ بدي- خفګان- خفه کېدنه- مرورتيا- خپګان- خپه کېدنه- خوابدے-

خوابدے:(خوا-ب-دے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ خوابد-

خواپټه:(خوا-پ-ټه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- خواشينے- بړوس- بڅ- وګورئ خوابد-

خواپوټه:(خوا-پو-ټه)صفت- (۱)مرور- خفه- خپه- خواپټه- (۲)بې اشتها- هغه څوک چې اشتها نهٔ لري-

خوا پهٔ خوا:(خوا-پهٔ-خوا)اسم مرکب- څنګ پهٔ څنګ- اړخ پهٔ اړخ- اوګه پهٔ اوګه- سره نژدې- سره نزدې-

خواتورن:(خوا-تو-رن)صفت- مذکر- زړهٔ تورے- خواتورے- زړهٔ وهلے- ترپامه بد شوے- دَ نظره بد راغلے-

متعلق- دَ پاره-

خواټوالے:(خوا-ټ-وا-لے)اسم- اطمينان- زړهٔ جمعي-

خواټول:(خوا-ټول)اسم- خاطر جمع- مطمئن- مؤنث خواټوله- جمع مؤنث خواټولې-

خواټولتوب:(خوا-ټول-توب)اسم- تسله- خاطر جمعي- خواټوالے- خواټولتيا- (افغانستان)-

خواټولتيا:(خوا-ټول-تيا)اسم- وګورئ خواټولتوب-

خواټولے:(خوا-ټو-لے)اسم- خواټول- خاطر جمع- مطمئن- مؤنث خواټوله- جمع مؤنث خواټولې-

خواجه:(خوا-جه)اسم- (۱)خوجه- صاحب- څښتن- خاوند- مالک- (۲)خصي- ټکولے شولے(سړے)-

خواجه حرزے:(خوا-جه-حر-زے)اسم- يو قسم ځنګلي بوټے-

خواچيې:(خوا-چ-يې)اسم- مؤنث- يو قسم ناروغتيا-

خواچيے:(خوا-چ-يے)صفت- واحد- مذکر- بد- مکروه- کينه ناک- بدنيته-

خواچي:(خوا-چي)اسم- لويه تبه-

خواخاطر:(خوا-خا-طر)اسم- خيال- ګومان- خوب وخيال- زړهٔ- ياداشت-

خواخپور:(خوا-خپور)اسمِ صفت- پرېشان- دلګير- خفه- غمژن-

خواخپوروالے:(خوا-خپور-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- خفګان- پرېشاني- خله- نول-

خواخپورول:(خوا-خپو-ر-ول)مصدر متعدي- دلګيرول- خفه کول- پرېشانول-

خواخپوري:(خوا-خپو-ري)اسم- مؤنث- پرېشاني- خفګان-

خواخپورے:(خوا-خپو-رے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دلګير- خفه- پرېشان- (افغانستان)-

خواخوږتوب:(خوا-خوږ-توب)اسم- مذکر- خواخوږوالے- خواخوږتيا- خواخوږي- زړهٔ سوے- همدردي-

خواخوږتيا:(خوا-خوږ-تيا)اسم- مؤنث- وګورئ خواخوږتوب-

خواخوږوالے:(خوا-خوږ-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ خواخوږتوب-

خواخوږي:(خوا-خو-ږي)اسم- مؤنث- زړهٔ سوے- خواخوږتوب- همدردي-

خواخوږے:(خوا-خو-ږے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- همدرد- زړهٔ سواند- غم شريک-

خواخوښي:(خوا-خو-ښي)اسم- مؤنث- خوشحالي- رضائيت- خوښي-

خواخوښے:(خوا-خو-ښے)صفت- خوشحاله-

خوار:(خوار)اسم- مذکر- ونډه- ګيا-

خوار:(خوار)اسمِ صفت- مذکر- (۱)ټپ- کمزورے- ضعيف- ړنګر- دَ چاق ضد- (۲)ژوبل- زوبل- (۳)بې وسه- غريب- مسکين- بې وزله- بې وزلے- (۴)حقير-

خوارارووا:(خوار-ار-وا)اسمِ صفت- واحد- مذکر- اروا وړے- وړ سترګے-

تر لرې پورې تللې وي-

خواړۀ:(خوا-ړۀ)اسم- شیریني- شیریني- د خوږ جمع-

خواړۀ لوړے:(خوا-ړۀ-لو-ړے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې خواړۀ خوارکونه ې خوښ وي- خواړۀ خوروونکے-

خواړۀ لوړی:(خوا-ړۀ-لو-ړی)صفت- خوږلوړي- خواړۀ-

خواړۀ ولنی:(خوا-ړۀ-و-لۀ-نی)اسم- جمع- مذکر- بادیان- کاږیلنی- کاږیلنی- کاړۀ ابلنی- کاړۀ وبلنی- خواړۀ وبلنی- نباتاتی نوم پم پنکلا اینیسم (PIMPINCLLA ANISUM)-

خواړۀ وبلنی:(خوا-ړۀ-وې-لۀ-نی)اسم- وګورئ خواړۀ ولنی-

خواس:(خواس)اسم- کبر- غرور- فخر- افتخار- لوئی- بډائی-

خواست:(خواست)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوال- غوښتنه- ګدائی- (۲)دُعا- مناجات- (۳)اُمید- التجا- جمع خواستونه- (کول مصدر)-

خواستغی:(خواس-تَ-غی)اسم- وږسترګ توب- وږسترګي- سترګ وږی-

خواستغے:(خواس-تَ-غے)اسم صفت- واحد- مذکر- وږسترګے- اړواوږے- وږے اروا- خواستګے- سترګ وږے-

خواستګار:(خواست-ګار)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- (۱)غوښتونکے- روبیار- طلبګار- جرګه والا- ربیار-

خواستګاری:(خواست-ګا-ری)اسم- طلبګاري- روبیاري- غوښتنه- ربیاري-

خواستګر:(خواست-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- خواست کونکے- سوالی-

خواستی:(خواس-تي)اسم- مؤنث- منت زاری-

خواسړے:(خوا-سَ-ړے)اسم- خواسړنه- ظلم- زیاتے-

خواشریک ورور:(خوا-شَ-ریک-ورور)اسم صفت- واحد- مذکر- د پیو شریک ورور- دائی ورور- چې چاسره پۀ یوه سینه پئ اورودل شی-

خواشینی:(خوا-شی-نی)اسم- تاثر- خفګان- غمژني- غمژنوالے- خوابدی- غمګینی-

خواشینے:(خوا-شي-نے)اسم- واحد- مذکر- خفه- مرور- خوا بدے-

خواښې:(خوا-ښې)اسم- واحد- مؤنث- د ښځې مور- د مېړۀ مور- جمع خواښیانې-

خواښې توب:(خوا-ښې-توب)اسم- مذکر- خواښې والے- خواښې جوړېدنه-

خواښې والے:(خوا-ښې-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ خواښې توب-

خواص:(خَ-واص)اسم- نږدې او مقرب کسان- خاص خلق- د خاصیت او خاصې جمع-

خواکول:(خوا-کَ-وَل)مصدرِ متعدی- مېچن کول- اوړۀ کول- دلول- مېده کول- اوړول-

خواګرخن:(خوا-ګر-خن)اسم- مذکر- خواګرخېدونکے- کرکژن څیز- قی رواستونکے- (افغانستان)-

خوا ګرځول:(خوا-ګرَ-ځَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)قے کول- استفراق کول- خوا ګرځول- لستل- کانګې کول- باقی کول- (۲)د نظره بد راتلل- (افغانستان)-

خواګرځی:(خوا-ګر-ځی)اسم- (۱)قے- استفراق- باقی- کانګې- (۲)نفرت- کرکه- بدلېدۀ- بد راتلۀ- لۀ پامه بد راتلۀ- (افغانستان)-

خوا ګرځېدل:(خوا-ګر-ځې-دَل)مصدر لازم- (۱)زړۀ ړې ړې کېدل- کانګې راتلل- (۲)نفرت او کرکه پیدا کېدل-

خوا ګرځېدۀ:(خوا-ګر-ځې-دۀ)حاصل مصدر- (۱)لوست- قے- کانګې- استفراق- (۲)کرکه- نفرت- زړۀ توربېدنه- بد راتلۀ- (افغانستان)-

خواګرځے:(خوا-ګر-ځے)اسم- واحد- مذکر- (۱)زړۀ رایشېدنه- کوز کتو ته جوړېدنه- قے- ګرځون- (۲)د زړۀ تنګېدنه- ناقلارتیا- (۳)خړه- لړه- سیادلی-

خواګے:(خوا-ګے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پټ ملګرے- پټ مرستیال- پلوے- پټ امداد کونکے- (۲)د بیلورو یا غزانو پۀ لوبه کښې هغه غز چې پټ ایښودلے شوے وي او وروستو بیا پۀ خپل وار دغه غز یا بیلورے د خواګے پۀ نامه یادیږي-

خوال:(خَ-وال)اسم- واحد- مذکر- خاوال- (۱)غار- سمڅه- (۲)پټنځ ځائے- اغېل- شپول- د پسونو د ودربېدو او وسېدو ځائے- (۳)د دېوال یا کمر پۀ بېخ-

خوالن:(خوا-لَن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خولې خولې شوے- (۲)خولې کونکے- (۳)خولې کېدونکے-

خوالو:(خوا-لو)صفت- همراز- خمسور- محرم راز- هغه څوک چې د بل چاسره ې راز شریک وي- (افغانستان)-

خواله ګر:(خوا-له-ګر)اسم صفت- غم شریک- همدرد-

خواله ونیل:(خوا-له-و-نیل)مصدر- (۱)منل- قائلېدل- (۲)پر پورته کول-

خوالۀ:(خوا-لۀ)اسم- د زړۀ راز- همرازی- پټه خبره- د زړۀ راز چا ته وئیله- د زړۀ راز چا ته ځرګندونه- (افغانستان)-

خوالۀ ساتے:(خوا-لۀ-سا-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- راز ساتونکے-

خوامخا:(خوا-مَ-خا)اسم- خامخا- اروَمرو-

خوان:(خوان)اسم- واحد- مذکر- پتنوس- څپوړے- کندورے- مجمه- جمع خوانونه-

خوانائے:(خوا-نا-ئے)اسم- مذکر- د وادۀ مټائی-

خوانچه:(خوان-چه)اسم- واحد- مؤنث- مجمه- دستارخوان- هغه مجمه چې وریژې، قرمه او نور خوراک پکښې یو ځائې پروت وي-

خوانده:(خوان-ده)صفت- لستے- خنده- خانده- (م- فارسی)-

خوانئ:(خوا-نئ)امر- خورئ (متروک)-

خوازشا:(خوا-و-شا)اسم- شاوخوا- چار چاپېره- څلور واړه طرفه- ګېر چاپېره- ګرد چاپېره-

خواوې:(خوا-وې)اسم- جمع- مؤنث- اړخونه- طرفونه- لورې- پړې- واحد- خوا-

زبر "(غ-بۀ-ره)"، زورکے "(شل)"، پېښ "(نو-کا-ره)"، زبر "(ک-تاب)"، جزم "(شکون)"، "ۀ"(ز-ړۀ)، "ۀ"(ډو-بې-دۀ)

خواه:(خواه)لاحقه(۱)دَ نومونو او صفتونو لاحقه چې دَ توری په اخر کښې دَ لګولو سره ترې معنیٰ راولاړیږی لکه نیمه خواه، بدخواه- (۲)خواه- طبعه- طبیعت- (۳)زړهٔ-

خواه مخواه:(خواه-مَ-خواه)اسم مرکب- خامخا- ضرور- ضروری- اروم‌رو- چارو ناچار-

خواوابنهٔ:(خواه-وا-ښهٔ)اسم- خره واښ-خره وښ- دَ څاروو دَ خوراک یو قسم واښهٔ-

خواهش:(خوا-هِش)اسم- اُمېد- غښتنه- میله-

خواهشمن:(خوا-هِش-مَن)اسم صفت- غښتونکے- هیله من- خواهشمند- آرزومند-

خواهشمند:(خوا-هِش-مَند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ خواهشمن-

خوایخی:(خوا-یه-خی)اسم- زړهٔ سرېدنه- خوا یخېدنه- زړهٔ یخی- خوایخے-

خوایخے:(خوا-یه-خے)اسم- وګورئ خوایخی-

خوب:(خوب)اسم- واحد- مذکر- (۱)اودهٔ کېدهٔ- ویدهٔ کېدهٔ- بیدهٔ کېدهٔ- دَ ویښ والی ضد- (۲)رویا- دَ تېرو شویو یا دَ را روانو واقعاتو په خوب کښې عکس لیدنه- خوب لیدنه- (۳)تش خیال- تش تصور- جمع خوبونه-

خوبا:(خُو-با)اسم- واحد- مؤنث- معشوقه- ښها- محبوبه- ښهی- ښهو-

خوبانی:(خُو-با-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- منډته- زردالو- خُرمانی- خُرمانی- نباتاتی نوم پرونس ارمینیکا (PRUNIS ARMENIACA)-

خوبانۍ:(خُو-با-نۍ)اسم- ښکلا- ښائست- (۲)ښهٔ والے- غوره والے- خوبانی توب-

خوبانی توب:(خُو-با-نی- توب)اسم- (۱) غوره توب- ښهٔ والے- (۲)دَ خوانی وخت-

خوب ځئ:(خوب-ځئ)اسم- واحد- مذکر- ملاستون- دَ خوب کولو دَ پاره مخصوص ځائ- (افغانستان)-

خوبروئے:(خوب-رُوئے)اسم صفت- واحد- مذکر- ښائسته- ښکلے- ښے مخے- اغلے-

خوبړے:(خو-بَ-ړے)اسم- مذکر- معمولی خوب- لږ شان خوب- سترګې خوړېدنه-

خوبژن:(خوب-ژَن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خوب نیولے- خوب ورتلونکے- هغه څوک چې سترګې ئې دَ خوبه ډکې وی- (۲)ډېر خوب کونکے- (۳)خوب راوستونکے-

خوب غړے:(خوب-غړ-رے)اسم- مذکر- دَ اودهٔ کېدو کپړې-

خوبن:(خو-بن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ خوبژن-

خوبنکے:(خو-بن-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم حشره چې دَ سپلنی په بوټی کښې وی- دا حشره دَ وربښمو دَ چینجی په ډول دَ لرګی پوش دَ خانه راتاووی چې دَ ماشوم په غاړه کښې دَ ژړا لرې کولو دَ ټوټکې په توګه زوړندولے کیږی- (افغانستان)-

خوب وړے:(خوبَ-وهٔ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خوبولے- پرېشانی وړلے- پېرشانی وړے- (۲)اودهٔ- ویدهٔ- جمع خوب وړی-

خوبول:(خو-بَ-وَل)مصدر متعدی- خوب ورتلل- خوب وړل- اودهٔ کول-

خوبولے:(خو-بَ-وهٔ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- اودهٔ- ویدهٔ- بېدهٔ- جمع خوبولی-

خوبی:(خُو-بی)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې ډېر خوب کوی- جمع خوبیان-

خُوبی:(خُو-بی)اسم- واحد- مؤنث- صفت- ښهٔ والے- فائده- جمع خوبیانې-

خوبیاولے:(خو-بیا-وهٔ-لے)صفت- واحد- مذکر- (۱)اودهٔ- (۲)بې پروا-

خوبېدل:(خو-بې-دَل)مصدر- اودهٔ کېدل-

خوبېدلے:(خو-بې-دهٔ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوبولے- اودهٔ- پرېشانی وړے- اودهٔ شوے-

خوبېدن:(خو-بې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خوبېدل-

خوبېدنګ:(خو-بې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوبېدل-

خوبېدنه:(خو-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوبېدل-

خوبېدونکے:(خو-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خوبېدونکی- مؤنث خوبېدونکې- وګورئ خوبېدل-

خوبېدهٔ:(خو-بې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خوبېدل-

خوبے:(خُو-بے)اسم- واحد- مذکر- ډنډ- جوړ- جمع خوبی-

خُوپ:(خُوپ)اسم- مذکر- ګرد- غُبار- لړه- سخته لړه-

خوپره:(خُوپ-رِه)اسم- مؤنث- ډېره زیاته ګرمی- زیاته ګرمی- ډېره ګرمی-

خوپښې:(خو-پهٔ-ښې)اسم- جمع- مؤنث- پشې- پاشې- پیشې- دَ وړو ماشومانو دَ تشو متیازو نامه-

خوپن:(خُو-پن)اسم- واحد- مذکر- ګردبار- کره دوړه- بړبوکی- بوړبوکی-

خوپنه:(خُوپ-نه)اسم- واحد- مؤنث- بړبوکی- دَ پېرېانو ډولی- دَ ګرد نه ډکه سیلی- جمع خوپنې-

خوپنی:(خُو-پَ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کوپنی- پوکنی- پوقنی- پوښتی-

خوټ:(خوټ/خُوټ)اسم- مذکر- دَ څهٔ څیز دَ یشېدلو اواز- دَ جوشېدو اواز- جوش- خوښ-

خوټباد:(خوټ-باد)اسم- مذکر- دَ اکیو پاړسوب- دَ خوټو پاړسوب- هغه بیماری چې دَ بنیادم اګی پکښې پړسیږی-

خوټ خوټائ:(خوټ-خو-ټائ)اسم صوت- مذکر- دَ یشېدلو پرله پسې اواز- خوټکے- خوټهار- خوټ خوټے- خوټکا-

خوټ خوټۍ:(خوټ-خو-ټۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړې ټوپانی- وړې کوړی- خوټې خوټې- غاوکه- غوغاوکه- دَ مردکیو غاوېدو لوبه- دَ مردکیو دَ کوټې لوبه- دَ ټیقانو یو قسم لوبه- (افغانستان)-

ئ"(ځی-رل)، ې"(هې-ره-وَل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

خوټ خوټې:(خوټ-خو-ټې)اسم صوت- مؤنث- وګورئ خوټ خوټاې-

خوټ خوټے:(خوټ-خو-ټے)اسم صوت- مذکر- دٔ يشېدلو پرله پسې اواز- دٔ جوشېدو پرله پسې اواز- دٔ جوشېدو اواز-

خوټکا:(خوټ-کا)اسم صوت- وګورئ خوټ خوټاې-

خوټکاښ:(خوټ-کاښ)اسم- واحد- مذکر- خوټ کښ- لويه چونګښه- قوقرے- چنګښ- څنډاخ- چنډخ- ځينځښه- باټا- اکابکا- کټه بونګ چيندخ- کابلے چيندخ- خوټکښ- (افغانستان)-

خوټکښ:(خوټ-کښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ خوټکاښ-

خوټکنکه:(خوټ-که-نه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خوټکنې-

خوټکنې:(خوټ-کَ-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خوټکې- کټونې- کټوټې- دٔ ماشومانو جينکو دٔ لوبو کټوټې-

خوټکول:(خوټ-کَ-وَل)مصدر متعدی- يشول- جوشول- خوښول- داسې خوښ ورکول چې دٔ خټ خټ اواز ترې وُخيژی-

خوټکولے:(خوټ-کَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خوټکولی- مؤنث خوټکولې- وګورئ خوټکول-

خوټکون:(خوټ-کَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خوټکول-

خوټکونکے:(خوټ-کَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خوټکونکي- مؤنث خوټکونکې- وګورئ خوټکول-

خوټکونګ:(خوټ-کَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوټکول-

خوټکونه:(خوټ-کَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوټکول-

خوټکوهٔ:(خوټ-کَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوټکول-

خوټکېدل:(خوټ-کې-دَل)مصدر لازم- يشېدل- اېشېدل- جوشېدل- خوټ خوټے کول- خوټ خوټ کول- جوشونه وهل- خوټېدل- خټکېدل-

خوټکېدلے:(خوټ-کې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خوټکېدلی- مؤنث خوټکېدلې- وګورئ خوټکېدل-

خوټکېدن:(خوټ-کې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خوټکېدل-

خوټکېدنګ:(خوټ-کې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوټکېدل-

خوټکېدنه:(خوټ-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوټکېدل-

خوټکېدونکے:(خوټ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خوټکېدونکي- مؤنث خوټکېدونکې- وګورئ خوټکېدل-

خوټکېدهٔ:(خوټ-کې-دهٔ)حاصل مصدز او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صيغه- وګورئ خوټکېدل-

خوټکې:(خوټ-کې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)خوټکنې- (۲)پهٔ دېګ کښې معمولی پخکړے-

خوټکے:(خوټ-کے)اسم صوت- مذکر- وګورئ خوټ-

خوټلون:(خوټ-لون)اسم- مذکر- دٔ خوټو مغه ځرمن چې دٔ بنيادم اګې پکښې پرتې وی- (افغانستان)-

خوټنکه:(خوټ-نَ-که)اسم- واحد- مؤنث- وړه کټوی- وړه جوری- وړوکے دېګ- جمع خوټنکې- (افغانستان)-

خوټور:(خو-ټَ-وَر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مغه سړے چې خوټې ئې ډېرې غټې وی- (۲)شهوتی- شهواتی-

خوټول:(خو-ټَ-وَل)مصدر متعدی- يشول- جوشول- خوښول- خوټکول- ېيشول- جوش ورکول-

خوټولے:(خو-ټَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خوټولی- مؤنث خوټولې- وګورئ خوټول-

خوټون:(خو-ټَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ خوټول-

خوټونکے:(خو-ټَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خوټونکي- مؤنث خوټونکې- وګورئ خوټول-

خوټونګ:(خو-ټَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوټول-

خوټونه:(خو-ټَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوټول-

خوټوهٔ:(خو-ټَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خوټول-

خوټه:(خو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ نارينه آلهٔ تناسل- خايه- اګې- دٔ نارينه اګې- خصيه- ړګه-

خوټه ور:(خو-ټه-وَر)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)چې خټې ئې غټې وی- (۲)تکړه-

خوټهار:(خوټ-هار)اسم صوت- مذکر- خوټکار- دٔ کټوی دٔ يشېدو اواز-

خوټېدل:(خو-ټې-دَل)مصدر لازم- جوشېدل- اېشېدل- يشېدل- دٔ حرارت پهٔ وجه دٔ مائعې پهٔ براس کښې بدلېدل-

خوټېدلے:(خو-ټې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خوټېدلی- مؤنث خوټېدلې- وګورئ خوټېدل-

خوټېدن:(خو-ټې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ خوټېدل-

خوټېدنګ:(خو-ټې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ خوټېدل-

خوټېدنه:(خو-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خوټېدل-

خوټېدونکے:(خو-ټې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خوټېدونکي- مؤنث خوټېدونکې- وګورئ خوټېدل-

خوټېدهٔ:(خو-ټې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صيغه- وګورئ خوټېدل-

خوټې:(خو-ټې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- زمکې ته نژدې دٔ وُنې نه مات شوے خوړنده ښاخ-

خوټے:(خو-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- وړوکے- غنډکے- ټيټکے- پيشتے- پيشکے- غنډ- دٔ غنډ او لنډ قد خاوند- جمع خوټې-

خوج:(خوج)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ګل-

خوجو:(خو-جو)اسم- واحد- مذکر- (۱)نامرد- نامرد- ايجړا- (۲)خواجه- خاوند- څښتن- جمع خوجوګان-

خوجه:(خو-جه)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خوجو- نامرد- نامرد- ايجړا- نرښځے- مغه سړے چې پهٔ جنسی لحاظ نامرد وی- (۲)څښتن- خواجه-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(کَ-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-ښې-دهٔ)

خاوند- جمع خوجه ګان-

خوخاوې:(خو-خا-وې)اسم- اعراب- زور- زبر- پېښ- خوخې-

خوخند:(خو-خند)صفت- واحد- مذکر- خوخندے- حرکت کونکے- خوخيز- شورېدونکے-

خوخندتوب:(خو-خند-توب)اسم- حرکت کونه- شورېدنه-

خوخندکه:(خو-خن-ده-که)اسم- واحد- مؤنث- خوخنده- چينجے- حشره-

خوخنده:(خو-خن-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خوخندکه-

خوخندے:(خو-خن-دے)اسم- واحد- مذکر- جمع خوخندی- مؤنث خوخندی- وګورئ خوخنده-

خوخول:(خو-خه-ول)مصدرِ متعدی- حرکت ورکول- شورول-

خوخولے:(خو-خه-وۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع خوخولی- مؤنث خوخولې- وګورئ خوخول-

خوخون:(خو-خه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خوخول-

خوخونکے:(خو-خه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خوخونکی- مؤنث خوخونکې- وګورئ خوخول-

خوخونګ:(خو-خه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوخول-

خوخونه:(خو-خه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خوخول-

خوخوۀ:(خو-خه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوخول-

خوخه:(خو-خه)اسم- مؤنث- دَ څاروی دَ سينې غوښه- خوخې-

خوخې:(خو-خې)اسم- وګورئ خوخاوې-

خوخيز:(خوه-خيز)صفت/فاعل- خوخېدونکے- حرکت کونکے-

خوخين:(خو-خين)اسمِ صفت/فاعل- مذکر- متحرک- حرکت کونکے-

خوخېخونے:(خو-خې-خو-نے)اسم- واحد- مذکر- کيرړے- خوخندے-

خوخېدل:(خو-خې-دل)مصدرِ لازم- (۱)شورېدل- خوزېدل- پۀ حرکت کښې راوستل- (۲)حرکت کول- کوچېدل- تلل- (۳)بې ځايه کېدل-

خوخېدلے:(خو-خې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع خوخېدلی- مؤنث خوخېدلې- وګورئ خوخېدل-

خوخېدن:(خو-خې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خوخېدل-

خوخېدنګ:(خو-خې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوخېدل-

خوخېدنه:(خو-خې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خوخېدل-

خوخېدونکے:(خو-خې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خوخېدونکی- مؤنث خوخېدونکې- وګورئ خوخېدل-

خوخېدۀ:(خو-خې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ خوخېدل-

خوچکے:(خوچ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوښې پوټے- دَ غوښې ذره- خوچکے- جمع خوچکی-

خوچکے:(خوچ-کے)اسم- واحد- مؤنث- خوچکه- پوټے- پيڅانے- تيکه- بوټی- دَ غوښې وړوکے پوټے-

خرچے:(خو-چے)اسم- واحد- مذکر- چمګادړ- ښاپېرک- جمع خوچی-

خوږ:(خوږ)صفت- مذکر- (۱)خوږلن- ډېر ړک- زيات ړک- ترخنړو- تر شونړو- (۲)ګنړه- بهير-

خوږکے:(خوږ-کے)اسم- وګورئ خوټ-

خوږلن:(خوږ-لن)صفت- مذکر- وګورئ خوږ-

خوږ ماخوږ:(خوږ-ما-خوږ)اسمِ مرکب- (۱)غُنځېدنه- (۲)ګنړه ګونړه- بېروبار- بهير- ډېره ګنړه ګونړه-

خوږول:(خو-ږ-ول)مصدرِ متعدی- وګورئ خوټول-

خوږول:(خو-ږ-ول)مصدرِ متعدی- ړکول- ډېر ړکول- (۲)ګنړه ګونړه جوړول- بهير جوړول-

خوږولے:(خو-ږ-وۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خوږول-

خوږولے:(خو-ږ-وۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ خوږول-

خوږون:(خو-ږ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږون:(خو-ږ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږونکے:(خو-ږ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوږول-

خوږونکے:(خو-ږ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ خوږول-

خوږونګ:(خو-ږ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږونګ:(خو-ږ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږونه:(خو-ږ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږونه:(خو-ږ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږوۀ:(خو-ږ-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږوۀ:(خو-ږ-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږول-

خوږه:(خو-ږه)اسم- واحد- مؤنث- غار- سُورے- سمڅه-

خوږې:(خو-ږې)اسم- واحد- مذکر- توتکرے- توتکے-

خوږېدل:(خو-ږې-دل)مصدرِ لازم- جوشېدل- يشېدل-

خوږېدل:(خو-ږې-دل)مصدرِ لازم- ړکېدل- ترخلې کېدل- سوخېدل- (۲)غُنځېدل- (۳)بهير جوړېدل- خومبېدل-

خوږېدلے:(خو-ږې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع خوږېدلی- مؤنث خوږېدلې- وګورئ خوږېدل-

خوږېدلے:(خو-ږې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع خوږېدلی- مؤنث خوږېدلې- وګورئ خوږېدل-

خوږېدن:(خو-ږې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږېدل-

خوږېدن:(خو-ږې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږېدل-

خوږېدنګ:(خو-ږې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږېدل-

خوږېدنګ:(خو-ږې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږېدل-

خوږېدنه:(خو-ږې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږېدل-

خوږېدنه:(خو-ږې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خوږېدل-

خوږېدونکے:(خو-ږې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خوږېدونکی-

مؤنث خوښېدونکې- وګورئ خوښېدل-

خوښېدونکے:(خو-ښې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خوښېدونکي- مؤنث خوښېدونکې- وګورئ خوښېدل-

خوښېدهٔ:(خو-ښې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خوښېدل-

خوښېدهٔ:(خو-ښې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خوښېدل-

خوخت:(خوخت)اسم صفت- (۱)جُخت- (۲)زوور- سم- ښهٔ-

خوخئ:(خو-خئ)اسم- واحد- مذکر- غوړګه- تبغه- سترګه-

خوخے:(خو-خے)اسم- واحد- مذکر- یو بوټے چې ډېر ګڼ راټوکیږی او بېخ ئې نرے وی-

خود:(خود)اسم- سد- واک- اختیار- حال- اراده- (۲)خکه-

خود:(خود)اسم- واحد- مذکر- هوش- زغم- حوصله- اکر- (۲)پخپله-

خود:(خود)البته- شاید- بائد- پخپله- مکمن-

خوداختیار:(خود-اخ-تیار)اسم صفت- خودمختار- ازاد- مستقل- پهٔ خپل اختیار- پهٔ خپل واک- خپلواک-

خوداختیاری:(خود-اخ-تیا-ری)اسم- خپل اختیار لرنه- پهٔ خپله اراده- خپلواکی- ازادی- خودمختاری- استقلال-

خودارادیت:(خود-ا-را-دی-یت)اسم- پهٔ خپله خوښه- خپلواکی- ازادی- دَ خپل اختیار- خپل سرنوشت ټاکنه-

خودبین:(خود-بین)اسم صفت- مغرور- کبرژن- خودخواه- خودپسند- پهٔ ځان مئین- ځان خوښے- هغه څوک چې یو ځان پېژنی او بل څوک ئې دَ پامه څهٔ نهٔ راځی-

خودبینی:(خود-بی-نی)اسم- مؤنث- کبر- خودپسندی- پهٔ ځان مئین توب- ځان لیدنه- خودخواهی- غرور- کبر-

خودپرست:(خود-پ-رست)اسم صفت- مذکر- (۱)کبرژن- مغرور- خود خواه- پهٔ ځان مئین- ځان خوښے- هغه څوک چې خپل ځان ورته هر څهٔ هر څهٔ ښکاری-

خودپرستی:(خود-پ-رس-تی)اسم- مؤنث- خودخواهی- ځان مننه- ځان نمائنه- ځان لوړ بلنه- ځان لوړ ګڼنه- کبر- غرور-

خودپسند:(خود-پ-سند)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ خپلې مرضی مالک- دَ خپلې طبعې-

خود پهٔ خوده:(خود-پهٔ-خو-ده)متعلق فعل- پخپله- بې واسطې- پخپل سر- پخپله-

خودخواه:(خود-خواه)اسم صفت- هغه څوک چې ځان دَ نورو نه وچت ګڼی او یواځې ځان ګڼی-

خودخواهی:(خود-خوا-هی)اسم- مؤنث- وګورئ خودپرستی-

خوددار:(خود-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ خپل عزت خیال ساتونکے- غیرتی- نر-

خودداری:(خود-دا-ری)اسم- مؤنث- ځنګ کونه- ډډه کونه- ګوښه کېدنه- امتناع- قناعت- صبر-

خودرائی:(خود-را-ئی)اسم صفت- پهٔ خپله رائې تلنه- سرکشی-

خودرائے:(خود-را-ئے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ خپلې رائې خاوند- خودسره- خپل سرے- هغه څوک چې پخپله رائې او نظریه کار کوی-

خودرنګ:(خود-رنګ)اسم- واحد- مذکر- قلم- پېن- پن- (۲)دَ طبعې رنګ لرونکے- ذاتی رنګ- هغه څهٔ چې طبعی رنګ لری-

خودرو:(خود-رو)اسم- واحد- مذکر- خودرویه- طبعی واښهٔ- هغه بوټے چې پخپله راشین کیږی-

خودسر:(خود-سر)اسم صفت- واحد- مذکر- سرایله و برایله- پخپل سر- خودرایه- خودسرے-

خودسری:(خود-سه-ری)اسم- مؤنث- سرکش- خودرائی-

خودښکه:(خو-دښ-که)کلمه- اے خدایه- لویه خدایه-

خودغرض:(خود-غ-رض)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- خپل چارے- خپل چاروکے- مطلبی- مقصدی- دَ مطلب خاوند- مغرض- غرضی-

خودغرضی:(خود-غر-ضی)اسم- مؤنث- خپل چاری- مطلب لرنه- مقصد لرنه- غرض لرنه- نفسانفسی- خپل غرض سره سریکار-

خودکار:(خود-کار)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- هغه مشین چې پخپله کار کوی- (لکه خودکاره وسله- خودکاره ګړی)-

خودکاشت:(خود-کاشت)اسم- (۱)هغه زمکه چې مالک ئې خپله کری- (۲)خپله زمکه پهٔ خپله کرونکے-

خودکشی:(خود-ک-شی)اسم- مؤنث- ځان وژنه- ځان مړ کونه- ځان لهٔ ژونده خلاصونه-

خودله:(خود-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم بانس- (۲)یو قسم شپېلی-

خودمختار:(خود-مخ-تار)اسم صفت- واحد- مذکر- خوداختیار- دَ خپل واک خاوند- خپلواک- آزاد-

خودمختاری:(خود-مخ-تا-ری)اسم- مؤنث- خپلواکی- خپل اختیاری- آزادی-

خودمطلبی:(خود-مط-ل-بی)اسم- مؤنث- خودغرضی-

خودمه:(خود-مه)اسم مفعول- واحد- مذکر- خپلے- زهلے- ټکولے-

خودمینځ:(خود-مینځ)اسم- خودمنځ- پهٔ منځ سورے لرونکے څیز-

خودنما:(خود-ن-ما)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- ځان ښودونے- ځان ښکاروے- ځان ښکارونے- ځان ښونے- ریاکار- کبرژن-

خودنمائی:(خود-ن-ما-ئی)اسم- مؤنث- ځان ښودنه- ځان ښکارونه- تظاهر- دَ خپل ځان ښینه-

خودی:(خو-دی)اسم- مؤنث- (۱)کبر- غرور- (۲)خودخواهی- خودپرستی- (۳)ځانګړتوب- یواځې توب- (۴)سُد- بېداری- هوش- هوښ- دَ بېداری حالت- (۵)ذات- هستی-

خور:(خور)اسم- واحد- مؤنث- دَ پلار لور- دَ مور لور- دَ ورور مؤنث-
(۲)دَ پښتو دَ څلورو میاشتو نومونه- جمع خوریانې/خوېندې-

خور:(خَوَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)اخور- دَ څاروو او ځنګرو دَ خوراک او
تړلو ځایٔ- (۲)کیاه- واښهٔ-

خَوَر:(خَوَر)اسم- واحد- مذکر- خورک- پوټ- پَټ- څرمن- هغه څرمن چې دَ
جراحت نه وروستو وچه شی، پترے وُنیسی او غرځېدو ته نژدې شی-

خور:(خور)اسم صفت- وران- ویجاړ-

خور:(خور)لاحقه- (۱)دَ نومونو سره.دَ لاحقې پهٔ توګه استعمالیږی لکه
غمخور- سودخور- (۲)دَ فعلِ حال دَ اشکالو بسنټ-

خورا:(خو-را)صفت- دَ خوړلو وړ-

خورا:(خَو-را)صفت- زښت- ښېخی- ډېر زیات- دَ ښېخی زیاتو، لړو، ښو، بدو
او نورو صفتونو سره دَ تاکید پهٔ ډول راځی (لکه خورا ښهٔ سړے دے- خو
را زوړ)-

خوراړه:(خو-را-ړه)اسم- واحد- مؤنث- توده جګړه- سور جنګ- جمع
خوراړی-

خوراړه:(خو-را-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ جزام یا دَ برص بیماری-

خورازک:(خو-را-زک)اسم- واحد- مذکر- خروسک- خراسک- دَ ماشومانو یو
قسم بیماری چې دَ خُلې نه یٔ یو خاص قسمه اواز راوځی او مری یٔ
بندیږی- (افغانستان)-

خو راښهٔ:(خو-را-ښهٔ)صفت- ډېر ښهٔ-

خوراک:(خَو-راک)اسم- واحد- مذکر- خواړهٔ- غذا- طعام- دَ خوړلو څیزونه-
اتام- (۲)خوړنه- جمع خوراکونه-

خوراک توښه:(خَو-راک-تو-ښه)اسم- ابرګی شومګی- خرڅه- جمع- نان نفقه-
دَ خوراک سامان- پنګه- غټه- هغه توښه او پنګه چې یواځې دَ خوړلو پهٔ
کار راتلے شی-

خوراک څښاک:(خَو-راک-څښاک)اسم مرکب- (۱)خوړنه څښنه- کانه پینه- چایٔ
پانی- (۲)آب ودانه-

خوراکه:(خَو-را-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خواړهٔ- خوراک- (۲)خوړنه- جمع
خوراکې-

خوراکه باب:(خَو-را-که-باب)اسم- جمع- دَ خوړلو څیزونه- دَ خوړلو مواد-
غذائی مواد- (افغانستان)-

خوراکی:(خَو-را-کی)اسم صفت- دَ خوړلو- دَ خوراک سره تړلی-
(۲)خوړونکے- (۲)اسم- دَ ولور پېسې چې مور پلار نه بل کوم وارث ته
پاتې شی-

خوراکی دانه:(خَو-را-کی-دا-نه)اسم مرکب- واحد- مؤنث- توره دانه- جمع
خوراکی دانې-

خو رالړ:(خو-را-لړ)اسم صفت- لړ کوټې- لړ شان- نوکې-

خورانه:(خَو-را-نه)اسم- واحد- مذکر- ناسکولے- ناسکښلے- هغه ګډورے چې
زړی یٔ سکښلې شوي نهٔ وی-

خوربانۍ:(خور-با-نۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خُرمانۍ- دَ نباتاتی نوم دَ
پاره وَګوری خرمانی-

خوربللې:(خور-بَ-لهٔ-لې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خورینګه- خورینه-
خوارخونده- خورنیولې- هغه ښځه چې پهٔ خور نیولی شوې وی-

خورتیا:(خور-تیا)اسم- خوروالے- خورولی- خورینګه توب- خورګیری-

خورتې ابهٔ:(خو-رهٔ-تې-اُ-بهٔ)اسم- مؤنث- خرې اُبهٔ- ګنده اُبهٔ-

خورج:(خو-رج)اسم- ستره وظیفه- مهم کار- لویٔ کار- دَ نوم او شهرت کار-
نامی یا غوره کار- (افغانستان)-

خورجین:(خور-جین)اسم- واحد- مذکر- اَس پنډوکے- دُمبېله- خورجینه-
ببېردن-

خورجینه:(خور-جی-نه)اسم- واحد- مؤنث- خورجی- ببېردن- کوټځه- یو قس
ټوپۍ چې پکښې غوړونه پټ وی-

خورجی:(خور-جی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ببېردن- خورجینه- کوټځه-

خورخن:(خور-خن)اسم- دَ تبخی دَ جوړېدو دَ پاره استعمالېدونکې یو قسم
خاوره- (افغانستان)-

خورخون:(خور-خون)اسم- واحد- مذکر- خټه- جبلت- فطرت- خاوره-
(افغانستان)-

خورخه:(خور-خه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خور لور-

خورخه توب:(خور-خه-توب)اسم- خورخه والے- دَ خور لورتوب-

خورخه والے:(خور-خه-وا-لے)اسم- وَګوری خورخه توب-

خورخی:(خور-خی)اسم- واحد- مؤنث- توبره- جورجی-

خورخل:(خور-خل)اسم- واحد- مذکر- دَ تېنچی پهٔ شان آله چې پسونه پرې
سکښلے شی-

خورخوټی:(خور-خو-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وَګوری حُباب-

خورد:(خورد)اسم- واحد- مؤنث- چیټاکی- خوړد- دَ پاؤ څلورمه برخه- ۲۴
مثقاله- (افغانستان)-

خورده:(خور-ده)اسم- واحد- مؤنث- خوړده- خُرده- دَ زیارت یا بل سپېځلی
ځایٔ خاوره یا مالګه چې خلق یٔ دَ ځان سره راوړی او خوری یٔ-

خورده بورژوازی:(خور-ده-بورژ-وا-زی)صفت- مؤنث- وړه بورژوازی-

خورده فروش:(خور-ده-فَ-روش)اسم فاعل- واحد- مذکر- پرچون خرڅونکے-
دَ وړو څیزونو پلورونکے- دَ لږو څیزونو پلورونکے-

خورده فروشی:(خور-ده-فَ-رو-شی)اسم- دَ لږو څیزونو خرڅونه- پرچون
خرڅونه- دَ وړو څیزونو خرڅونه- هغه خرڅلاؤ چې پهٔ ښهٔ قسم نهٔ وی-

خور راخور:(خور-را-خور)اسم صفت- خور وور-

خورزن:(خور-زن)اسم- مذکر- یو قسم پوست کانړے چې اوږهٔ کولو نه پس
خاورې سره ګډولے شی او تری نه لوښی جوړولے شی-

خورزون:(خور-زون)اسم- طبعیت- مزاج- خوئ بوئ- خصلت- (افغانستان)-

ئ (څی-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وَګوری تشریحات صفحه ۱

خورسک:(خور-سک)اسم- خوشحالي- خوښي- خوشـالي- قرصک- (افغانستان)-

خورسک:(خور-سک)اسم- واحد- مذکر- ستغې- وزغې- خورازک- دَ ستوني دَ پرسېدو بيماري-

خورسکتوب:(خور-سک-توب)اسم- خوشحالي- خوشحالتيا- خوشحالېدنه- خوشالي- خورسکتيا- (افغانستان)-

خورسکتيا:(خور-سک-تيا)اسم- وګورئ خورسکتوب-

خورغود:(خور-غود)اسم صفت- واحد- مذکر- بې تميزه- بې اعتبـاره- چالاک- دوکه باز- جمع خورغودان-

خورغودي:(خور-غو-دي)اسم- بې اعتباري- چالاکي- دوکه بازي-

خورک:(خو-رک)اسم- دَ خوړلو طريقه- خوړنه- (افغانستان)-

خورکوڅې:(خور-کو-څې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ جينکو يوه لوبه- (افغانستان)-

خورکه:(خو-رهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- توپۍ- سروبے- خاورين لوښے چې أبهٔ پکښې څښلے شي- (افغانستان)-

خورکه:(خو-رهٔ-که)اسمِ تصغير- خورکۍ- دَ خور اسم تصغير- خور ته دَ ګرانښت او مينې لهٔ کبله وئيلے شي- (۲)پردۍ ښځې ته دَ احترام دَ پاره دا خطاب وئيلے کيږي-

خـورکـۍ:(خـو-ر-کـۍ)اسم- واحـد/جـمـع- مؤنث- (۱)دَ خـوړلـو وړ څـيـز- (افغانستان)-

خورکۍ:(خو-ر-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خورلنه- دَ خور اسمِ تصغير- وګورئ خورکه-

خورکے:(خور-کے)اسمِ صوت- خرار- خرهار- خورېدنه- خورهار- خرخر- خرېدنه-

خورګ:(خورګ)اسم- واحد- مذکر- پټ- پوټ- پترے- پترکے- دَ زخم پهٔ مخ باندې خروکے يا نرے پوستکے-

خورګر:(خور-ګر)اسم- واحد- مذکر- چميار-

خورګيري:(خور-ګي-ري)اسم- مؤنث- خورکېدنه-

خورلنه:(خور-لهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- خورينګه- کومه جينۍ چې وادهٔ شي نو دَ پلارګنۍ او دَ پلار دَ کلي والؤ خورلنه ګڼلے شي- (۲)خوربللي-

خورما:(خور-ما)اسم- واحد- مؤنث خرما- کجوره- دَ کجورې مېوه- نباتاتي نوم پوئنکس سېلوسټرس (PHOENIX SYLVESTRIS)-

خور ماخور:(خور-ما-خور)صفت- وران- ګډوډ- خور وور- وير- پروت-

خورمائي:(خور-ما-ئي)اسم صفت- مذکر- خرمائي- يو قسم رنګ- (۲)يو قسم سور توت- (۳)مغه زردالو چې ناوخته(پسينه)رسيږي او تېرمائي زردالو ورته وائي- (افغانستان)-

خور مخور:(خور-م-خور)اسم صفت- خور ماخور- تـالا والا- تـالا شوے- (۲)ميرات شوے-

خورمزې:(خور-م-زې)اسم- مزه- خوند-

خورمن:(خور-من)اسم- اشتها- زياته خوړنه- دَ زيات خوراک دَ پاره اشتها-

خورمنځ:(خور-منځ)اسم- واحد- مذکر- طبيعت- خواهش-

خورمنځ والے:(خور-منځ-وا-لے)اسم- حامله کېدنه- امېدواره کېدنه-

خورمنے:(خور-مهٔ-نے)اسم- مغزې او قوې خواړهٔ چې غذائيت پکښې ډېر وي- (افغانستان)-

خورمه:(خور-مه)اسم- (۱)وړې غرمکې يا ګرمکې- (۲)پشم- نرے بـاران- بورمک- (۳)نرئ خوله- (۴)نوې رسېدلې وېره- (۵)کوسه- څېکړ- څوکر- مغه کس چې وېره ئې کمه وي-

خورمې:(خور-مې)اسم- جمع- مؤنث- زرې- خورومې-

خورنده:(خو-رن-ده)اسم صفت- واحد- مذکر- ګېډور- خېټور- خوراکي- پُرخور- ډېر خورے- ډېر خوراک کونکے-

خورندے:(خو-رن-دے)اسم- واحد- مذکر- مغه څوک چې دَ نوي رسيدلي باغ مېوه اول بار وخوري- (۲)نوې مېوه- مغه مېوه چې خورندي ته برابره وي- (افغانستان)-

خورنګي:(خو-رن-ګي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ مېزرې دَ بوټي بېخ-

خورنی:(خو-ر-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ وادهٔ يا سنّت پهٔ موقعه خپلو خپلوانو ته ورکېدونکې شيريني-

خورنول:(خور-نه-ول)مصدرِ متعدي- برړول- سېول- سکول- (۲)دَ ګړ پهٔ ګډه خېژول-

خورنولے:(خور-نه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خورنولي- مؤنث خورنولې- وګورئ خورنول-

خورنون:(خور-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ خورنول-

خورنونکے:(خور-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خورنونکي- مؤنث خورنونکې- وګورئ خورنول-

خورنونګ:(خور-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ خورنول-

خورنونه:(خور-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خورنول-

خورنوهٔ:(خور-نه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ خورنول-

خورنه:(خور-نه)اسم- ګيرې- لوخې- ګوشخوره- دَ نوکانو دَ لاندينې پوستکي پورته کېدهٔ- دَ اوريو غوښه خوړلے کېدهٔ- (افغانستان)-

خورنېدل:(خور-نې-دل)مصدرِ لازم- (۱)برړېدل- سېدل- سکېدل- ختل- (۲)دَ ګړ پهٔ ګډه ختل-

خورنېدلے:(خور-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خورنېدلي- مؤنث خورنېدلې- وګورئ خورنېدل-

خورنېدن:(خور-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ خورنېدل-

خورنېدنګ:(خور-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ خورنېدل-

خورنېدنه:(خور-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ خورنېدل-

خـورنېـدونـکے:(خـور-نـې-دون-کـے)اسم فـاعـل- واحـد- مـذکـر- جـمـع خورنېدونکي- مؤنث خورنېدونکې- وګورئ خورنېدل-

خورنېدهٔ:(خور-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خورنېدل-

خوروکے:(خَو-رُو-کے)اسم- واحد- مذکر- خور- خروکے- خیږ- پترکے- پوست- قشر- پټ- پوټ-

خوروکے:(خَو-رو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوازکے- خوار- خواربزګار- غریب- (۲)زېلے- مظلوم-

خوړول:(خَو-ر-وَل)مصدرِ متعدی- ځوک مړول- څهٔ څیز پهٔ چا خوړل-

خورول:(خَو-ر-وَل)مصدر- ویرول- (۲)تیتول- نشرول- خپرول-

خورولے:(خَو-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خورولی- مؤنث خورولې- وګورئ خورول-

خورولے:(خَو-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خورولی- مؤنث خورولې- وګورئ خورول-

خورومه:(خو-رو-مه)اسم- واحد- مؤنث- تایه- زری- اذوقه- ذخیره شوې غذا- جمع خورومې-

خورون:(خَو-ر-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خورون:(خَو-ر-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خورونکے:(خَو-ر-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خورونکی- مؤنث خورونکې- وګورئ خورول-

خورونکے:(خَو-ر-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خورونکی- مؤنث خورونکې- وګورئ خورول-

خورونګ:(خَو-ر-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خورونګ:(خَو-ر-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خورونه:(خَو-ر-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خورونه:(خَو-ر-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خوروور:(خور-وور)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ګډوډ- بې ډوله- بې ترتیبه- لاندې باندې- نستلے شوے- خرلے شوے- تس نس-

خوروهٔ:(خَو-ر-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خوروهٔ:(خَو-ر-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ خورول-

خوره:(خو-ره)اسم- مؤنث- ټپ- زخم- قرحه- (افغانستان)-

خوره:(خَو-ره)اسم- واحد- مؤنث- مغه ننکې چې خوریږی- خورېدونکې دانه-

خورمار:(خور-مار)اسمِ صوت- خرمار- پرله پسې خرېدنه- خرخر کونه-

خوری:(خو-ری)اسم- مؤنث- خوروالے- خورګلوی- خورتوب- خوار خوندګی-

خوریاسه:(خور-یا-سه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم ښانسته واښهٔ-

خورین:(خَو-رین)اسمِ صفت- مذکر-.خاورین- دَ خاورو لوښے- مغه لوښے چې دَ خاورو نه جوړ شوے وی-

خورینګتوب:(خو-رینګ-توب)اسم- مؤنث- (۱)نرښخوالے- ایجراتوب- (۲)دَ خورینګه جوړېدو حالت-

خورینګه:(خو-رینګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- خورینګی- خورینه- خوارخونده- دینی خور- ملګرې- سوېلی- خوربللې- جمع خورینګې-

خورینګی:(خو-رینګ-ګی)اسم- مؤنث- (۱)خوروِلی- سوېلی توب- دَ ښځو پهٔ خپلو کښې دوستی- (۲)دَ دوؤ جینکو یا ښځو پهٔ خپلو کښې بدکاری کونه-

خورینګی:(خو-رینګ-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خورینګه- خورینه- دینی خور- سوېلی- ملګرې- خوربللې- خوارخونده-

خورینه:(خو-ری-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خورینګی-

خوریے:(خَو-ر-یے)اسم- واحد- مذکر- دَ خور خوئ- جمع خوریی-

خورېدل:(خَو-ری-دل)مصدرِ لازم- نشرکېدل- (۲)ویرېدل- اوارېدل- پلنېدل-

خورېدن:(خَو-ری-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدنګ:(خَو-ری-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدنه:(خَو-ری-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خورېدل-

خورېدونکے:(خَو-ری-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خورېدونکی- مؤنث خورېدونکې- وګورئ خورېدل-

خورېدهٔ:(خَو-ری-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ خورېدل-

خوری:(خَو-ری)اسم- واحد جمع- مؤنث- پټکری- پټکټی- زنځ- زمچ- پټکری- پټکنی- زمه- سپین زچ-

خورے:(خَو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوراکی- خورنده- ډېرخوره- زیات خوره- ښهٔ خوراک کونکے-

خورے:(خَو-رے)اسم- واحد- مذکر- خاورین- خورین- شینکے- کنډول- خاورین لوښے- (۲)ریښه- نسل- بنیاد- خټه- زوریت- (۲)ګل کنه- مغه ځائې چې خاوره ترې چلولے شی- (افغانستان)-

خَوړ:(خَوړ)اسم- واحد- مذکر- شېله- سم- لګړ- خوړه- توے- لویه وله چې دَ باران پهٔ اُبو اباده وی- جمع خوړونه-

خوړ:(خَوړ)اسمِ صوت- دَ کانګو اواز- هوق- دَ قی یا استغراق اواز- دَ خواګرځېدو اواز- (کول مصدر)-

خوړ:(خوړ)اسم صفت- واحد- مذکر- یار- ملاتړلے- چمتو-

خوړت:(خو-ړت)اسمِ صوت- دَ پوزې دَ کړینګ اواز-

خوړتن:(خوړ-تن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)چې پوزه ئې بهیږی- (۲)کمزورے- بې کاره- سست-

خوړتول:(خوړ-ته-وَل)مصدرِ متعدی- دَ پوزې نه راوتے کړینګ دوباره راکښل-

خوړتېدل:(خوړ-تې-دَل)مصدرِ لازم- دَ پوزې نه راوتے کړینګ دوباره راکښلے کېدل-

خوړچ:(خَو-ړچ)اسم- واحد- مذکر- دَ نسترن بوټے- (۲)نسترن غُندې یو اغزی لرونکے بوټے- دَ نباتاتی نوم دپاره وګورئ نسترن-

خوړخوړے:(خوړ-خو-ړے)اسم- واحد- مذکر- خونخونے مغه سړے چې پهٔ سپېړمو کښې خبرې کوی-

خوړده:(خوړ-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خورده-

خینکوهٔ:(خینک-گ-وهٔ)حاصل مصدر - وګورئ خینګول-

خینکېدل:(خینک-کې-دل)مصدر لازم- شرمېدل- خجلېدل- خجالت کېدل- خنګېدل-

خینګېدن:(خینک-کې-دن)حاصل مصدر - وګورئ خینګېدل-

خینګېدنګ:(خینک-کې-دنګ)حاصل مصدر - وګورئ خینګېدل-

خینګېدنه:(خینک-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ خینګېدل-

خینګېدونکے:(خینک-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع خینګېدونکي- مؤنث خینګېدونکي- وګورئ خینګېدل-

خینګېدهٔ:(خینک-کې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ خینګېدل-

خې:(خې)تلفظ- د پښتو ژبې د "الف بې" د پټې د دولسم حرف "خ" تلفظ-

خې:(خې)اسم- ایخ- پهٔ کونډو- پهٔ کوډو ناست- پهٔ کونډو ناست- خې کېدنه- چو کېدنه-

خې:(خې)اسم صوت- د اوښ کښېنولو آواز-

خېبي:(خې-بي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د یخو اُبو کوهے- (افغانستان)-

خېټکي:(خې-ټ-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ خېټکے-

خېټکے:(خې-ټ-کے)اسم- واحد- مذکر- وړه ګېډه- وړه خېټه- خېټکي-

خېټو:(خې-ټو)اسم صفت- واحد- مذکر- خېټور- ګېډور- ډېر خوراکي- سترخېټے-

خېټور:(خې-ټ-ور)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- مؤنث خېټوره- جمع مؤنث خېټورې- وګورئ خېټو-

خېټورتوب:(خې-ټ-ور-توب)اسم- ګېډورتوب-

خېټه:(خې-ټه)اسم- واحد- مؤنث- ګېډه- جمع خېټې-

خېټې:(خې-ټې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پې- د جوارو پهٔ کچۀ دانو کښې چې کوم پې شان وي-

خېجي:(خې-جي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ګودر- (۲)عارضي کوهے-

خېخي:(خې-خي)اسم- مؤنث- زیمناکه زمکه-

خېڅه:(خې-څه)اسم- واحد- مؤنث- ټوتکرکے- ښڅیاکه- ښوڅیاکه- توتکي- خرسکه- خرسوکے- ابابیل-

خېدک:(خې-دک)اسم- وران شوی او خراب شوی پې-

خېر:(خېر)اسم- (۱)ښېګړه- نېکي- ښهٔ کار- (۲)هغه روپۍ یا پیسې چې سوالګرو ته ورکولے شي- خېرات-

خېرات:(خے-رات)اسم- واحد- مذکر- صدقه- د خدای تعالی پهٔ نامه څهٔ ورکونه-

خېرات خور:(خے-رات-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې همېشه خېراتونه خوري-

خېراتول:(خے-را-ت-ول)مصدر متعدي- صدقه کول- قربانول- قربان کول- د خدای پهٔ نامه څهٔ ورکول-

خېراتي:(خے-را-تي)اسم صفت- د خېرات سره متعلق- وګورئ خېرات-

خېراتېدل:(خے-را-تې-دل)مصدر لازم- صدقه کېدل- قربانېدل- د خدای پهٔ نامه څهٔ ورکېدل-

خېراندېش:(خېر-ان-دېش)اسم- واحد- مذکر- خېر خواه- خېر غښتونکے- خواخوږے- نېک نظرے- ښکومے- هغه څوک چې د خلقو پهٔ مېنځ کښې خېر او صلحه غواړي-

خېر برکت:(خېر-بَ-رَ-کت)اسم مرکب- برکت- ښېګړه- ترقي-

خېر پخېر:(خېر-پهٔ-خېر)اسم مرکب- ستړې مشې- جوړ تکړه- علېک سلېک- د روغ جوړ پښتنه-

خېر پخېري:(خېر-پهٔ-خې-ري)اسم- خېر پهٔ خېر- مرکلے- ستړې مشې-

خېر خبر:(خېر-خَ-بر)اسم مرکب- د ښې بدې پښتنه- د حال احوال خبر-

خېرخوا:(خېر-خوا)اسم صفت- مذکر- د بل خېر غښتونکے- (م- فارسي)-

خېرخواهي:(خېر-خوا-هي)اسم- د بل خېر غښتنه- (م- فارسي)-

خېر خېرات:(خېر-خے-رات)اسم مرکب- مذکر- خېرات- د الله تعالیٰ پهٔ نوم څهٔ ورکونه-

خېر خېریت:(خېر-خے-ري-یت)اسم مرکب- مذکر- خېرسکے- روغ جوړ حال-

خېرسلا:(خېر-س-لا)اسم مرکب- خېر خېریت-

خېرغلامان:(خېر-غُ-لا-مان)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو قسم تور بخن انګور چې توروالي ته نژدې وي-

خېرمار:(خېر-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- د خېرماره مذکر-

خېرماره:(خېر-ما-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- سوالګره- چنګړې- ګدا ګره- هغه ښځه یا جینۍ چې خېر غواړي-

خېرو:(خې-رو)اسم- مذکر- خېروکوکو- خېروګل- ګل خېرو- یو قسم ګل چې د زخم د پاره پکارولے شي- (افغانستان)-

خېرو خېرات:(خے-رو-خے-رات)اسم مرکب- مذکر- شکرانه- خېراتي روپۍ- نذر نیاز- لنګر- خدائي روپۍ- خېرات زکات- صدقه- منښته- د خدای پهٔ نوم خوارو غریبو له روپۍ ورکونه-

خېروکوکو:(خې-رو-کو-کو)اسم- مذکر- وګورئ خېرو-

خېره:(خې-ره)اسم- واحد- مؤنث- ازار- بددعا- جمع خېرې-

خېریت:(خے-ري-یت)اسم- سلامتیا- کراره کراري- قلاره قلاري- خاطر جمعي-

خېریه:(خېر-یه/خے-ري-یه)اسم صفت- د خېر- خېر رسونکے- مرستندویه-

خېز:(خېز)اسم- (۱)ټوپ- کوپ- دانګ- (۲)جوش- غورېدنه- ژر وده کونه- ژر لوېدنه- (۳)د لاحقې پهٔ توګه هم استمالولے شي- لکه حاصل خېز-

خېزي:(خې-زي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خزه- خازه- تره- ښاخه-

خېږک:(خې-ږک)اسم- واحد- مذکر- (۱)خېره- پاترے- د زخم د پاسه زېچ پوټکے- پوټ- (۲)پرهار- (۳)د لاسو او پښو موړې-

خېږول:(خې-ږ-ول)مصدر متعدي- (۱)پورته کول- خېزول- لوړول- (۲)د چیت

ځايُ نه لوړ ځايُ ته لېږدول- (۲)قيمت اوُچتول- اززښت جګول- بيه کول-

خېږولے:(خې-ږُ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع خېږولي- مؤنث خېږولې- وګورئ خېږول-

خېږون:(خې-ږُ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ خېږول-

خېږونکے:(خې-ږُ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع خېږونکي- مؤنث خېږونکې- وګورئ خېږول-

خېږونګ:(خې-ږُ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ خېږول-

خېږونه:(خې-ږُ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ خېږول

خېږوهٔ:(خې-ږُ-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ خېږول-

خېږی:(خې-ږی)اسم صفت- واحد- مؤنث- تړ- غټ کټ- دروند او ستر کټ-

خېش:(خېش)اسم- واحد- مذکر- خوېش- خپل خپلوان- رشته دار- خپل-

خېشه:(خې-شه)اسم- واحد- مؤنث- غابنی- دُ ږومنکې غابنی-

خېشی:(خې-شي)اسم- لړه پېژندګلو- دُ لرې راشه درشه- تعلق- دوستی-

خېښ:(خېښ)صفت- خوېښ- خپل- رشته دار- جمع خېښان-

خېښوالی:(خېښ-وا-لي)اسم- مؤنث- خېښی- خپلوی- رشته داری-

خُېښه:(خې-ښه)اسم صفت- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې دُ زوم لهٔ کوره دُ وادهٔ پهٔ شپه دُ وادهٔ لهٔ کالو سره ځي او دُ وادهٔ پهٔ ورځ ناوې سره يو ځايُ راځي- (۲)دُ خېښ مؤنث-

خېښی:(خې-ښي)اسم- واحد- مؤنث- خپلوی- خپلولی-

خېل:(خېل)اسم- واحد- مذکر- ذات- ټپه- توکم- ټبر- خاندان-

خېلخانه:(خېل-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- ټبر- کورنۍ- خاندان- کوړمه-

خېلکی:(خېل-کي)اسم صفت- واحد- مؤنث- بې وقوفه- کم عقل-

خېله:(خې-له)اسم صفت- واحد- مذکر- ايله- ايله ګر- پوچ- بې معنې- کم عقل- چټی- بې مفهومه- (۲)ټوقی- ټوقمار-

خېله پرتوګ:(خې-له-پُر-تُوګ)اسم صفت- واحد- مذکر- خېله کُس- خېله- ناپوهه- کم عقل-

خېله خند:(خې-له-خند)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ټوقی- ټوقمار- خېله خندے- (۲)پوچ- بې معنې- چټی- دُ مر چا دُ خندا-

خېله خندی:(خې-له-خن-دی)اسم- مؤنث- ټوقه- ملنډه- مسخره- (۲)پوچه خبره- رېشخندې- جمع خېله خندی-

خېله خندے:(خې-له-خن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ خېله خند-

خېله کُس:(خې-له-کُس)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ خېله پرتوګ-

خېلی:(خې-لي)اسم- مؤنث- ټوپې-

خېلے:(خې-لے)اسم- دُ اخرى چارشمبې دُ چوری يو رسم- ارت خېلے- تنګ خېلے-

خېمه:(خې-مه)اسم- واحد- مؤنث- تمبو- کېږدی- تامبو- جمع خېمې-

خېنتې:(خېن-تې)اسم- واحد جمع- مؤنث- وړوکے کب- وړوکے مهے- (۲)دُ اربشو فصل چې لهٔ زمکې راپورته شوے وی خو وږے يُ لا نهٔ وی کړے- (۲)پهٔ ونه باندې داسې پورته کېدل چې سينه پهٔ تنه باندې نښتې وی-

خی:(خی)اسم- (۱)چټل- ناولے ځيز- کرکڅن ځيز- کخ- (۲)دُ ماشومانو پهٔ ژبه فضله يا غليظ مواد ته ونېلے کيږی- کی- قی-

---

د :(دال)مذکر- دَ پښتو ژبې دَ " الف، ب " دَ پټۍ دیارلسم حرف چې دَ ابجدو پهٔ حساب ئې شمېر څلور حسابېږی-

د :(دَ)حرف- دَ اضافت حرف لکه "دَ سره، دَ چا" وغېره-

دا:(دا)اسمِ اشاره- نژدې څيز یا چا ته دَ اشارې پهٔ طور وئیلے شی-

دا:(دا)اسم- واحد- مذکر- دَ دادا مخفف-

داب:(داب)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ارټ تیر- (۲)رواج- عادت- دود- (۳)کوشش- (۴)رعب- دبدب- (عربی)-

دابوب:(دا-بوب)اسم- واحد- مذکر- داباب- ګواښ- رُعب داب- دپکه- دړکه- جمع دابوبونه-

دَ اُبو ژرنده:(دَ-اُ-بو-ژرن-ده)اسم- واحد- مؤنث- هغه ژرنده چې پهٔ اُبو چلیږی- جمع دَ اُبو ژرندې-

دابه:(دا-به)اسم- واحد- مؤنث- څاروے- ځنګر- مال- جمع دابې-

داپ:(داپ)اسم- واحد- مذکر- دَ جولاګانو تنسته- دام- جمع داپې-

دا پهٔ دا:(دا-پهٔ-دا)متعلقِ فعل- پهٔ دې لحاظ- پهٔ دې وجه- پهٔ دې سبب-

داپې:(دا-پې)اسمِ صفت- جمع- مؤنث- (۱)دفعې- بندې- چُپې- پټې- ټپې- (۲)ګنډلې-

دات:(دات)اسم- واحد- مذکر- (۱)نُطفه- (۲)کبر- لوئی- (۳)دهات-

داتا:(دا-تا)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بخښونکے- (۱) ورکونکے- فیاض- سخی- (۲)الله تعالٰی-

داتکے:(دات-کے)اسم- واحد- مذکر- یو بوټے چې دَ جامو پهٔ رنګولو کښې پکاریږی-

داتوره:(دا-تو-ره)اسم- واحد- مؤنث- دالتوره- دامتوره- ډالتوره- یو زهرژن بوټے-نباتاتی نوم داټوره سټرېموریم (DATURA STRAMORIUM)-

داج:(داج)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه توره تیارهٔ شپه چې سپوږمۍ پکښې نهٔ وی- (۲)دَ ناوې سامان- جهېز-

داجی:(دا-جی)اسم- واحد- مذکر- وګورئ داداجی-

دا څېر:(دا-څېر)متعلقِ فعل- دا قسم- دا رنګه- دا شان-

داخل:(دا-خل)اسمِ صفت- مذکر- ننوتے- ورننوتے- چې پهٔ څهٔ کښې ئې داخله اخستې وی- شمار کښې راغلے- دَ خارج ضد- مؤنث داخله-

داخل خارج:(دا-خل-خا-رج)اسم مرکب- مذکر- پهٔ مدرسه یا محکمه مال کښې دَ اندراج رجسټر-

داخلول:(دا-خ-ل-ول)مصدر متعدی- ننوېستل- دننه کول- داخله اخستل-

داخلون:(دا-خ-ل-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ داخلول-

داخلونکے:(دا-خ-ل-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع داخلونکی- مؤنث داخلونکې- وګورئ داخلول-

داخلونګ:(دا-خ-ل-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ داخلول-

داخلونه:(دا-خ-ل-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ داخلول-

داخله:(دا-خ-له)اسمِ صفت- مؤنث- (۱)کورنے- وطنی- دَ وطن- دَ ملک- (۲)دَ داخلېدو- دَ ننوتو- دَ ننه ایستو- (۳)دَ داخل مؤنث-

داخلی:(دا-خ-لی)صفت- واحد- مذکر- دَ خارجی ضد- داخلیت- اندرونی-

داخلیت:(دا-خ-لی-یت)اسم- واحد- مذکر- دَ خارجیت ضد- دننه والے- اندرونی-

داخلېدل:(دا-خ-لې-دل)مصدر لازم- ننوتل- دننه کېدل- داخله کول- ورننوتل-

داخلېدن:(دا-خ-دلې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ داخلېدل-

داخلېدنګ:(دا-خ-دلې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ داخلېدل-

داخلېدنه:(دا-خ-دلې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ داخلېدل-

داخلېدونکے:(دا-خ- لې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع داخلېدونکی- مؤنث داخلېدونکې- وګورئ داخلېدل-

داخلېدهٔ:(دا-خ-لې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ داخلېدل-

دا خوا:(دا-خوا)متعلقِ فعل- دغه خوا- دغه پلو- دې خوا- دغه طرف-

داد:(داد)اسم- واحد- مذکر- (۱)شاباسے- شاباشے- تعریف کونه- (۲)ورکړه- بخښنه- انعام- بخشش- (۳)عدل-

دادا:(دا-دا)اسم- واحد- مذکر- دَ پلار اؤ مشر ورور دَ پاره دَمینې توری- جمع داداګان-

داداتوب:(دا-دا-توب)اسم- واحد- مذکر- مشرتوب- پلارتوب-

داداجی:(دا-دا-جی)اسم- (۱)دَ پلار دَ پاره دَ مینې نوم- پلار- (۲)دَ مشر ورور لقب-

دادخواه:(داد-خواه)اسمِ صفت- واحد- مذکر- داد غښتونکے- فریادی- مظلوم- (۲)مدعی- دعوېدار-

دادرا:(داد-را)اسم- واحد- مؤنث- دَ یو راګ نوم-

دادرده:(دا-در-ده)صفت- دادردا- دادورده- ډېر سخی-

دادره:(داد-ره)اسم- مؤنث- یو راګ- دَ سندرو یو وزن-

دادری:(داد-ری)اسم- واحد- مؤنث- ژبې- دَ ماشومانو دَ ستونی لوېدو بیماری-

دادک:(دا-دک)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ داداجی-

دادکه:(دا-دهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- تعظیماً دَ مشرې خور دَ پاره وئیلے شی- (افغانستان)-

دادکے:(دا-د-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوړاسکی پهٔ څېر یو غرنیز بوټے-

دادګر:(داد-ګر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- داد ورکونکے- شاباشے ورکونکے-

دادګیرنه:(داد-ګی-رهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- انصاف- تسلی- ډاډګیرنه- شاباسے- سود-

دادوکار:(دا-دو-کار)اسم- واحد- مذکر- یو قسم زیږرنګے بوټے-

داد وګرفت:(داد-وَ-ګ-رفت)اسم- واحد- مذکر- ورکړه راکړه-

داده:(دا-ده)اسمِ صفت- واحد- مذکر- اقراری- تسلیمونکے- منونکے-

دادی:(دا-دی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)داد ورکونکے- (۲)عرض کونکے-

"ئ" (ښی-رل)، "ې"(هې-ره-ول)، "ی"(پیا-لې)، "ے"(تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

(۳)فریادي- انصاف غښتونکے-

داړول:(دا-ړول)متعلق فعل- دا رقم- دا شان- دا رنګ-

دار:(دار)اسم- واحد- مذکر- ګلخړي- ګل زیړي- هغه ګلخړي چې د چارماري یا نښې ویښتو د پاره جوړه کړے شي-

دار:(دار)اسم- واحد- مذکر- (۱)غرغره- پانسي- سولي- صليب- (۲)نښه- (۳)کور- ځاۍ- (۴)ښار-

دار:(دار)(۱)د لاحقې په توګه استعماليږي، لکه پامته دار، ديندار- (۲)د مرکبو کلمو د وړومبي جُز په شکل هم استعماليږي لکه دارالامان، دارالخلافه وغيره- (۳)لرونکے- ساتونکے- (۴)تنګ-

دارالابتلا:(دا-رُل-اب-ت-لا)اسم- واحد- مذکر- د امتحان او ازميښت ځاۍ-

دارالبقا:(دا-رُل-بَ-قا)اسم- واحد- مؤنث- اخرت- عقبىٰ- قائم پاتې کېدونکے جهان-

دارالامان:(دا-رُل-اَ-مان)اسم- واحد- مذکر- د امن ځاۍ- د راحت ځاۍ-

دارالانشاء:(دا-رُل-ان-شا)اسم- واحد- مؤنث- د ليکلو اداره-

دارالتاديب:(دا-رُت-تا-ديب)اسم- واحد- مذکر- د تعليم ځاۍ- د ادب ښودلو ځاۍ-

دارالحکومت:(دا-رُل-ح-کو-مت)اسم- واحد- مذکر- د حاکم د وسيدو ځاۍ-

دارالخلافت:(دا-رُل-خِ-لا-فت)اسم- مذکر- دارالحکومت- دارالسلطنت-

دارالخلافه:(دا-رُل-خِ-لا-فه)اسم- واحد- مؤنث- د تخت ځاۍ- د ملک صدر مقام-

دارالسلام:(دا-رُس-سَ-لام)اسم- واحد- مذکر- (۱)د سلامتى کور- د امن کور- (۲)جنت-

دارالسلطنت:(دا-رُل-سَل-طَ-نت)اسم- واحد- مذکر- پاۍ تخت- د بادشاه د استوګې ځاۍ-

دارالعلوم:(دا-رُل-عُ-لوم)اسم- واحد- مذکر- مدرسه- ښوونځاۍ- کالج- درسګاه-

دارالعمل:(دا-رُل-عَ-مل)اسم- مذکر- د عمل کور

دارالفنا:(دا-رُل-فَ-نا)اسم- دنيا-

دارلفنون:(دا-رُل-فُ-نون)اسم- واحد- مذکر- د ړول ړول هنرونو د زده کړې ځاۍ- پوهنتون-

دارالکتب:(دا-رُل-کُ-تب)اسم- مذکر- لائبريري- د کتابونو ځاۍ-

دارالمجانين:(دا-رُل-م-جا-نين)اسم- واحد- مذکر- د ليونيو د ساتنې ځاۍ-

دارالمساکين:(دا-رُل-م-سا-کين)اسم- واحد- مذکر- د غريبانانو او د فقيرانو د ساتلو ځاۍ- مرستون-

دارالمکافات:(دا-رُل-مُ-کا-فات)اسم- واحد- مذکر- د بدلو د موندلو ځاۍ- اخرت- د جزا او سزا موندلو ځاۍ-

دارائي:(دا-را-ئي)اسم- مؤنث- شتمني- مال او دولت- پانګه- سرمايه- پنګه-

دارچينی:(دار-چی-نی)اسم- واحد- مؤنث- دال چينی- يو خوش ذائقه پوستکے چې په مصالحو کښې استعماليږي-

دارکش:(دار-کش)اسم- واحد- مذکر- جلات- جلاد- تېزندی ورکونکے- د دار رسی راکښونکے-

دارکے:(دار-کے)اسم- مذکر- نهال- نيال- غورګے- نيالګے-

دار مدار:(دار-مَ-دار)مرکب- (۱)دارو مدار- خاطر مدار- خاطر تواضع- عزت- لحاظ- (۲)انحصار-

دارو:(دا-رُو)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)دوائي- دوا- (۲)ګوګړ- بارود-

دارو درمل:(دا-رو-دَر-مل)اسم مرکب- مذکر- دوائي- دوا- علاج-

دارو سيکه:(دا-رو-سی-که)اسم (مرکب)- دارو مړکے- ګوله بارود- کارتوسونه- باتې- پټاخې- مېخزين- مېګزين-

داروغه:(دا-رو-غه)اسم- واحد- مذکر- د جېل افسر- دروغه- محافظ- نګهبان- افسر- سردار- تاڼېدار-

داروکار:(دا-رو-کار)اسم- واحد- مذکر- يو قسم زهرژن بوټے-

داروګان:(دا-رُو-ګان)اسم- جمع- مذکر- د دارو جمع- دوايانې-

داروګر:(دا-رُو-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- دارو جوړونکے- داروساز- دواساز- دواۍ ساز- ډاکټر- حکيم- طبيب-

دارو مدار:(دا-رو-مَ-دار)اسم- ټيټ پاس- انحصار- يقين- اعتبار- عزت-

دارو مړدک:(دا-رو-مړ-دک)اسم (مرکب)- دارو مردکی- ګوله بارود- پټاس او اړيازل- سامان جنګ-

داره:(دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- د مائع څيز پرله پسې ليکه- پشکه- فواره- جمع دارې-

داره:(دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تندور-

داري:(دا-ری)د ځينو کلمو په آخر کښې راځی او اسمی کلمې ترې جوړيږي لکه "وفاداری"-

داریا:(دار-یا)اسم- واحد- مذکر- داریال- دریه- دف- تمبل-

داریال:(دار-یال)اسم- واحد- مذکر- تمبل- وګورئ داريا- جمع داريالونه

داريه:(دار-يه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ داريا-

دارې:(دا-رې)متعلق فعل- (۱)دغسې- دا رنګې- داسې- (۲)د داره جمع-

دارین:(دا-رین)اسم- جمع- مذکر- دا دنيا او هغه دنيا- فاني او ابدی دنيا- (م- عربی)-

داری:(دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- فواره- پواره-

داړ:(داړ)صفت- داړه- تالا- لوټ- تاړاک تالا- (۲)شوکمار- غل- تاړ- قزاق-

داړا:(دا-ړا)اسم صفت- واحد- مذکر- داړور- داړينګ- هغه څوک چې غاښونه يې وږده او راوتی وی- داړک-

داړک:(دا-ړک)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ داړا-

داړل:(دا-ړل)مصدر متعدی- (۱)چيچل- څيرل- (په غاښونو سره)- (۲)لوټل-

داړلے:(دا-ړلے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع داړلی- مؤنث داړلې- وګورئ داړل-

"زبر"(غ-بَه-ره)، "زورکے"(شل)، "پيش"(نو-کا-ره)، "زير"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ة"(ز-ړه)، "ۀ"(ړو-بې-دۀ)

داړن:(دا-ړن)حاصل مصدر- وګورئ داړل-

داړنه:(دا-ړه-نه)حاصل مصدر- وګورئ داړل-

داړينے:(دا-ړي-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- داړو- داړک- هغه څوک چې غاښونه يې وړدهٔ وي- داړا-

داړو:(دا-ړو)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ داړا-

داړور:(دا-ړ-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ داړا-

داړوک:(دا-ړوک)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ داړا-

داړونکے:(دا-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع داړونکي- مؤنث داړونکې- وګورئ داړل-

داړونے:(دا-ړو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ داړونکے-

داړه:(دا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (عموماً دَ ښځو) په جوړ ډېوال کښې دَ بل ډېوال سره دَ جوړ ساتلو دَ پاره پرېښودل شوے ځاے- دړا-

داړه:(دا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړه غاښ- (۲)تمبه- در- دروازه- (۳)دړه- لرګے- (۴)ډاکه- شوکه- لوټمار- شبخون- (۵)شيشه-

داړه ډپه:(دا-ړه-ډ-په)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ داړه دوپه-

داړه دوپه:(دا-ړه-دو-په)اسم- واحد- مؤنث- چپاؤ- هپه دپه- تاخت تاراج- هله- داړه ډپه-

داړه مار:(دا-ړه-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- ډاکو- غل- قزاق- تاړ- شوکمار- لار وهونکے- چپاړي-

داړه ماري:(دا-ړه-ما-ري)اسم- واحد- مؤنث- دَ داړه مار کسب يا پېشه- لوټ مار-

داړهٔ:(دا-ړهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراي دَ واحد غائب صيغه- وګورئ داړل-

داړينګ:(دا-رينګ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ داړا-

داړنے:(دا-ړ-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ داړا-

داستان:(داس-تان)اسم- واحد- مذکر- وړده قيصي- قيصه- دَ واقعې بيان-

دَ اسمان کټ:(دَ-اس-مان-کټ)اسم- مذکر- دَ اوو ستوريو جومپک- اسمان کټ-

داسه:(دا-سه)اسم- واحد- مؤنث- هغه لرګے چې دَ اوښ دَ بار سره تړلے وي اؤ دواړه اندې سره يو ځاے کوي- ډسه-

داسې:(دا-سې)متعلق فعل- دا شان- دغهٔ شان- دا رنګې- دا رنګ- دارې-

داسيکه:(دا-سي-که)متعلق فعل/صفت- فوراً- دستي- ژر-

داش:(داش)اسم- واحد- مذکر- تنور- تندور- نغرے- داښت-

داشت:(داشت)اسم- واحد- مذکر- (۱)قوت- طاقت- (۲)پائښت- دوام- جمع داشتونه-

داشتولک:(داش-تو-لک)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه مارغهٔ چې وړزمبے کُريز يې کړے وي او عمر يې دَ يو کال نه اوړېدلے وي-

داشي:(دا-شي)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ داښي-

داښ:(داښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ داش-

داښت:(داښت)اسم- واحد- مذکر- تنور- پچه- دَ کلال بټې- آوې-

داښتي:(داښ-تي)اسم- واحد- مذکر- اټيوال- دکاندار- اټې والا- هغه اټيوان چې په بازار کښې څهٔ خرڅوي-

داښي:(دا-ښي)اسم صفت- واحد- مذکر- په داښت پورې تړلے- دَ داښت- داشي-

داعيه:(دا-ع-يه)اسم- مؤنث- (۱)سبب- وجه- عامل- (۲)محرک- (۳)حقوقي غښتنه- حقوقي مسئله- دَ خپل حق غښتنه-

داغ:(داغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)تبے- تړکه- بګار- (۲)دَ سوزېدو چاپ يا نښه- نشان- خاپ- خال- خاپے- (۳)تور- تهمت- (۴)شوملو ته بګار کونه-

داغدار:(داغ-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)داغي- داغلے شوے- سوے لونے- (۲)تهمتي-

داغسر:(داغ-سر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تورغاړے- داغسرے- چنچړ- چرچر- چرچڼ- يو تورغاړے وړوکے مارغهٔ-

داغل:(دا-غل)مصدر متعدي- داغ ورکول- سول-

داغلے:(دا-غهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع داغلي- مؤنث داغلې- وګورئ داغل-

داغمه:(داغ-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ داغ نښه- دغمه- ځکالے- تغمه- دَ وهلو خاپ-

داغن:(دا-غن)حاصل مصدر- وګورئ داغل-

داغنګ:(دا-غنګ)حاصل مصدر- وګورئ داغل-

داغنه:(دا-غهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ داغل-

داغول:(دا-غ-ؤل)مصدر متعدي- (۱)داغل- داغ ورکول- داغ لګول- سول- (۲)بدنامول-

داغون:(دا-غ-ؤن)حاصل مصدر- وګورئ داغول-

داغونکے:(دا-غ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع داغونکي- مؤنث داغونکې- وګورئ داغول-

داغونګ:(دا-غ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ داغول-

داغونه:(دا-غ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ داغول-

داغونه:(دا-غو-نه)اسم- جمع- مذکر- دَ داغ جمع-

داغي:(دا-غي)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)داغدار- تهمت زده- آلوده- (۲)خاپ لرونکے- داغ لرونکے-

داغېدل:(دا-غې-دل)مصدر لازم- (۱)داغ کېدل- نښه لګېدل- (۲)زوروېدل-

داغېدلے:(دا-غې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع داغېدلي- مؤنث داغېدلې- وګورئ داغېدل-

داغېدن:(دا-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ داغېدل-

داغېدنګ:(دا-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ داغېدل-

داغېدنه:(دا-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ داغېدل-

داغېدونکے:(دا-غې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع داغېدونکي- مؤنث داغېدونکې- وګورئ داغېدل-

داغېدهٔ:(دا-غې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ داغېدل-

ډاکټر:(ډاک-ټر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ډاکټر-

ډاګه:(ډا-ګه)اسم- واحد- مؤنث- ډاګه- جار-

دال:(دال)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)یو قسم غله- (۲)دَ پښتو دَ پټي دَ دیارلسم حرف تلفظ- (۳)دلیل-

دالان:(دا-لان)اسم- واحد- مذکر- څته- غولے- صحن- انګن- ارته او لویه برنډه- باورچي خانه- مېدان- ډاګه-

دالتوره:(دال-تو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ داتوره-

دالته:(دال-ته)ضمیر- هلته- دَ دغلته مخفف-

دال چپاتے:(دال-چ-پا-تے)اسم مرکب- مذکر- ډوډۍ او اینګولے- خوراک- دَ غریبي خوراک-

دال چیني:(دال-چي-ني)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دارچیني-

دال خور:(دال-خور)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دال خوړونکے- (۲)تحقیري کلمه-

دال ساګ:(دال-ساګ)اسم مرکب- مذکر- دال پټي- دَ غریبي خوراک- ساګ سکرک-

داله:(دا-له)ضمیر- دلته- دا-

دالي دبري:(دا-لي-دي-ري)اسم- واحد- مؤنث- اني باني- اخوا دېخوا- ټال مټول-

دالي:(دا-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دلي- ډبرے- ټوپ-

دام:(دام)اسم- واحد- مذکر- (۱)داپ- جال- لومه- پرکه- پرته- کوړکي- (۲)مکر- فریب- جنجال- (م- فارسی)-

داماد:(دا-ماد)اسم- واحد- مذکر- زوم- دَ لور خاوند-

دامان:(دا-مان)اسم- واحد- مذکر- مېره- بیابان- دشت- دشته- صحرا- بېدیا- کرغه- راغه- بېټه-

دامانه:(دا-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ دامان زمکه-

دامتوره:(دام-تو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ داتوره-

دام دار:(دام-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه ښکاری چې پهٔ دام کښې مرغې نیسي- دام لرونکے-

دامره:(دام-ره)متعلق فعل- دومره- نردي- دا قدر-

دامړے:(دام-ړے)اسم- واحد- مذکر- دمړے- دَ پیسي څلورمه برخه-

دامن:(دا-من)اسم- واحد- مؤنث- لمن- لمنه- پېڅه- پږه-

دامن ګیر:(دا-من-ګیر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لمن نیونکے- (۲)پهٔ برخه- پهٔ نصیب- پهٔ قسمت-

دامي:(دا-مي)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه باز چې پهٔ دام نیولے شوے وي- جره- کټه-

دامیار:(دام-یار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ښکاری- صیاد- پهٔ دام سره ښکار کونکے- دامي- (۲)ازاد- ارت- (۳)اورد- (۴)پېر زخت- ډېره موده-

دان:(دان)اسم- واحد- مذکر- دَ ایښودو شے- دَ سابقې پهٔ ځای استعمالیږي- لکه قلمدان- نکته دان-

دانا:(دا-نا)اسم صفت- واحد- مذکر- هوښیار- ذهین- نابغه- عقلمند-

دانائي:(دا-نا-ئي)اسم- واحد- مؤنث- هوښیاري- پوهه- عقل- سوچ-

داندل:(دان-دل)اسم- واحد- مذکر- جنجال- غوبل- غوبمنډ- ازمېښت- مصیبت- آفت- فساد- غوغا- هله ګله- قیامت-

داندل:(دان-دل)مصدر متعدی- دنګول- دَ تې ماشوم دَ لاس پهٔ ورغومی کښې ودرول یا پهٔ پښه ودرول او دانګوچې ورکول- پورته پورته دنګول-

داندلے:(دان-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع داندلي- مؤنث داندلې- وګورئ داندل-

داندن:(دان-دن)حاصل مصدر- وګورئ داندل-

داندنګ:(دان-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ داندل-

داندنه:(دان-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ داندل-

داندونکے:(دان-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع داندونکي- مؤنث داندونکې- وګورئ داندل-

دانده:(دان-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ځنګلي غوایهٔ- (۲)ډانډه- دنده- معامله- کاروبار-

دانډوغ:(دان-ډوغ)اسم صفت- واحد- مذکر- لټ- ناراست- سست-

دانست:(دا-نست)اسم- واحد- مذکر- پوهه- فکر- خیال- علم- واقفیت-

دانش:(دا-نش)اسم- واحد- مذکر- علم- عقل- پوهه- دانست- (م- فارسی)-

دانشګاه:(دا-نش-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- دارالعلوم- پوهنتون- دَ علم دَ حصول ځای- (م- فارسی)-

دانشمند:(دا-نش-مند)اسم صفت- واحد- مذکر- عقلمند- پوهه- عالم- پوې- پوهاند- دانش لرونکے- دانشور- (م- فارسی)-

دانشمندي:(دا-نش-من-دي)اسم- واحد- مؤنث- دانشوري- دَ پوهې کار- عقلمندي- (م- فارسی)-

دانشور:(دا-نش-ور)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ دانشمند- (م- فارسی)-

دانشوري:(دا-نش-و-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دانشمندي- (م- فارسی)-

دانګ:(دانګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټنګه (ټکه)- پیسه- (۲)ټوپ- ترپ- ارغوچکه-

دانګل:(دانګ-ګل)مصدر متعدی- (۱)ټوپ وهل- تېز تلل- (۲)مستي کول- دانګ وهل-

دانګلے:(دانګ-ګهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع دانګلي- مؤنث دانګلې- وګورئ دانګل-

دانګن:(دانګ-ګن)حاصل مصدر- وګورئ دانګل-

دانګنه:(دانګ-ګڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دانګل-

دانګوړے:(دانګ-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- بادرنګ- یوه سبزي چې اومه خوړے شي-نباتاتي نوم کوکومس سیټیوس (CUCUMIS SATIVUS) یا سي-یوټي لس سي مس (C. UTILISSIMUS)-

دانګول:(دانګ-ګ-ول)مصدر متعدي- دنګول- ټوپ ورکول- پهٔ ټوپونو کول- پهٔ منډه اخستل-

دانګولے:(دانګ-ګ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع دانګولي- مؤنث دانګولې- وګورئ دانګول-

دانګون:(دانګ-ګ-ون)حاصل مصدر- وګورئ دانګول-

دانګونکے:(دانګ-ګون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دانګونکي- مؤنث دانګونکې- وګورئ دانګل-

دانګونکے:(دانګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دانګونکي- مؤنث دانګونکې- وګورئ دانګول-

دانګونګ:(دانګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دانګول-

دانګونه:(دانګ-ګ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دانګول-

دانګه:(دانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- ترپه- اوږد ټوپ- جمع دانګې-

دانګه ترپه:(دانګ-ګه-تره-په)اسم مرکب- چاخه منډه- ځغل- دنګوچې وهل- دَ ځارو دَ بچو ترپکې او دانګونه- جمع دانګې ترپې-

دانګې دانګې:(دانګ-ګې-دانګ-ګې)اسم مرکب/صفت- پاره پاره- ټوټې ټوټې- شلېدلے-

دانګېدل:(دانګ-ګې-دل)مصدر لازم- دانګل- ټوپ وهل- پهٔ منډه تلل-

دانګېدلے:(دانګ-ګې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع دانګېدلي- مؤنث دانګېدلې- وګورئ دانګېدل-

دانګېدن:(دانګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دانګېدل-

دانګېدنګ:(دانګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دانګېدل-

دانګېدنه:(دانګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دانګېدل-

دانګېدونکے:(دانګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دانګېدونکي- مؤنث دانګېدونکې- وګورئ دانګېدل-

دانګېدهٔ:(دانګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دانګېدل-

دانګې پېچې:(دانګ-ګې-پې-چې)اسم مرکب- مؤنث- دانګې ترپکې-

دانګې وانګې:(دانګ-ګې-وانګ-ګې)اسم صفت- مرکب- دانګې دانګې- بیل بیل- شلېدلے-

دانګۍ:(دانګ-ګۍ)اسم- واحد- مؤنث- پاخته- پمبه- پُومبه- دَ پمبې بوټے- هغه سترګه چې پُومبه پکښې داني نیسي-

دانګے:(دانګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- (۱)بټ- کوغالے- (۲)یو قسم بوټے چې دَ رنګسازانو پکارېږي- (۳)منډه- (۴)حمله- یرغل-

دانوکۍ:(دا-نو-کۍ)اسم- واحد- مؤنث- دانکۍ- ننکۍ- وړه دانه-

دانه:(دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ غلې تخم- زړے- زړے- خرمُوه- (۲)ننکۍ- نینکۍ- دانوکۍ- دانکۍ- (۴)دَ هډوکي نه جوړه دَ جوارۍ یوه مخصوصه څلورګټېزه ګیټۍ- کنجکه- (۴)دَ اُبو دَ راوتو سرچینه- (۵)نینه- (۶)خرموره-

دانه ټوک:(دا-نه-ټوک)اسم- واحد- مذکر- دَ زیږو جوړه ټاپه چې دانې پکښې جوړیږي-

دانه خوره:(دا-نه-خو-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)هغه مرغۍ چې دَ دام نه دانې خوري او پکښې ګیرېږي نه- روږده- اموخته- (۲)هغه جینۍ چې دَ یو ملګ سره ئې مینه وي، دَ یاری تار ئې ورسره اچولے وي او دَ وصال طمع ئې پیدا شوې وي- (افغانستان)-

دانه دار:(دا-نه-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- دانې لرونکے- هغه څهٔ چې دانې لري- دانې دار-

دانه دانه:(دا-نه-دا-نه)اسم صفت- ذرې ذرې- بیل بیل- ترمې ترمې- خوروور- دانه وانه-

دانه وانه:(دا-نه-وا-نه)اسم صفت- وګورئ دانه دانه-

دانې دار:(دا-نې-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ دانه دار-

دانې دانې:(دا-نې-دا-نې)صفت- مؤنث- (۱)ریزه ریزه- ذره ذره- (۲)دانې دار-

داڼو:(دا-ڼو)اسم- واحد- مذکر- داوڼ- څادر- پړونے- پټکے- چکاله- داړۍ- ټیکرے- پټو-

داڼه:(دا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دُوړه- اوږهٔ- وانه- (۲)دل- ورغستلے- کور- ګوري- ایرغستلے-

داڼۍ:(دا-ڼۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ داڼو-

داؤ:(داؤ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چل- ګتکه- موقعه- وار- (۲)دو- منډه- ځغل- (۳)شرط- بازی-

داوتی ګل:(دا-وو-تی-ګل)اسم- واحد- مذکر- ششتی ګل- ګُل داوديـ- نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ ششتے-

داؤپېچ:(داو-پېچ)اسم مرکب- (۱)چل- فن- ترکیب- (۲)دَ کشتۍ پهٔ وخت دَ ملا یو خاص ترکیب چلونه- دَ پهلوانانو چل وټه- (۳)دَ بازیګرۍ کونترې بازینګرۍ اړونه-

داؤتے:(دا-وو-تے)اسم- واحد- مذکر- داؤدے- داؤدی- ګل داؤدی- داوتی ګل-

داوړن:(داو-ړن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ داڼو-

داؤس:(دا-ؤس)اسم صفت- واحد- مذکر- بې غیرته- دله- دوس-

داؤطلب:(داؤ-ط-لب)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)رضاکار- پهٔ خپله خوښه کار کونکے- چمتو- (۲)زیاتونکے- خېژونکے-

داؤطلبي:(داؤ-ط-ل-بي)اسم- مؤنث- (۱)رضاکاري- چمتووالے- (۲)جګونه-

زیاتونه- داړ خیژونه-

داونے:(داړ-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- کم همته او شوم سړے-

داوڼ:(دا-وڼ)اسم- واحد- مذکر- ژګورئ داڼو-

داوڼے:(داو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- د ژرندې تیر- تیرک- تیر-

داوه:(دا-وه)اسم- واحد- مؤنث- دعویٰ- نالش- درخواست- غښته-

داوه دنګله:(دا-وه-دنګ-له)اسم مرکب- واحد- مؤنث- دعویٰ دنګله- جګړه- شخړه- لانجه-

داوه ګیر:(دا-وه-ګیر)اسم صفت- واحد- مذکر- دعویٰ ګیر- دعویٰ لرونکے-

داوې:(دا-وې)اسم- جمع- مؤنث- بحثونه- خبرې-

داه:(داه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- خدمتګار- مرئیے- خدمتګاره- وینځه- دایه- دائی-

داهیانه:(داه-یا-نه)صفت- پهٔ پوهه سره- پهٔ هوښیاری-

دائر:(دا-ئر)صفت- واحد- مذکر- شروع- جاری- پرانستے- (افغانستان)-

دائرةالمعارف:(دائ-ر-تول-م-عا-رف)اسم- واحد- مذکر- انسائېکلوپیډیا- هغه کتاب چې ټول انسانی معارف پکښې پهٔ ترتیب سره راجمع شوی وی-

دائیروی:(دائ-ر-وی)صفت- ګردے- ګړدے- حلقوی- دٔ دائرې پهٔ شان-

دائره:(دائ-ره)اسم- واحد- مؤنث- چکر- چارچاپېره- غُنډه کرښه- ګړده کرښه- حلقه- جمع دائرې-

دائره کښ:(دائ-ره-کښ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دائره راکښونکے- (۲)پرکار- دائره جوړونکې آله-

دایک:(دا-یک)اسم- مذکر- روښکے- دٔ اسپنې یو وړوکے پترے چې پهٔ جامو از ټوپۍ باندې لګولے شی- چړکونے-

دائم:(دا-ئم)صفت- تل- مدام- همېشه- تر ابدا-

دائماً:(دا-ء-من)متعلق فعل- دٔ همېشه دٔ پاره- مدام- هر وخت- دٔ تل دٔ پاره-

دائمی:(دا-ئ-می)صفت- مدامی- عمری- همېشه- تل تر تله-

دائی:(دا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دٔ زېږېدو پهٔ وخت مدد ورکونکې ښځه- دائی ګنه- (۲)واړه لوبونکې نوکره-

دائی توب:(دا-ئی-توب)اسم- مؤنث- دٔ دائې کسب او کار- دائی ګیرت-

دائی ګیرت:(دا-ئی-ګی-رت)اسم- مؤنث- وګورئ دائی توب-

دائی ګنه:(دا-ئی-ګهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دائی-

دائیرول:(دا-ئی-ره-ول)مصدر متعدی- پرانستل- شروع کول- جاری کول-

دائیرېدل:(دا-ئی-رې-دل)مصدر لازم- شروع کېدل- روانېدل- جاری کېدل-

دائے:(دا-ئے)اسم- واحد- مؤنث- دٔ دېوال پخسه- دٔ دېوال پخڅه- دٔ دېوال موره-

دب:(دب)اسم- واحد- مذکر- (۱)وهل- وېره- دباؤ- ډار- (۲)کبر- لوئی- ویاړ-

دبا:(د-با)اسم صفت- واحد- مذکر- دباغ-

دباب:(د-باب)اسم- واحد- مذکر- اخ و ډب- دبدبه- شان و شوکت- رعب داب- شمشمه-

دبابو:(د-با-بو)اسم صفت- واحد- مذکر- باټو- خان ښواند- خان ښیونے- خان ښونکے- (افغانستان)-

دبابیال:(د-باب-یال)اسم صفت- شان شوکت لرونکے-

دبابیالے:(د-باب-یا-لے)اسم صفت- شمشمنے- برمیالے- صاحبِ حشمت- رعب لرونکے-

دباره:(د-با-ره)اسم- واحد- مؤنث- دٔ چرګې خاورینه اګی- هغه اګی چې بې دٔ چرګ نه اچولے شوی وی- خاکی-

دباره:(د-با-ره)صفت- پهٔ دویم ځل- دوباره-

دباشی:(د-با-شی)اسم صفت- واحد- مذکر- دٔ اوښانو کتې جوړونکے-

دباشی توب:(د-با-شی-توب)اسم- دٔ دباشی کسب-

دباغ:(د-باغ)اسم صفت- واحد- مذکر- اړی مار- ضدی- سرکښه- یاغی- مخالف- سرکش-

دباغ:(د-باغ)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې څرمنې رنګوی- څرمنې رنګونکے-

دباغت:(د-با-غت)اسم- مؤنث- څرمن رنګونه- څرمن پخونه- دباغی-

دباغی:(د-با-غی)اسم- مؤنث- وګورئ دباغت-

دٔ باندینے:(د-بان-دی-نے)صفت- واحد- مذکر- بهرنے- خارجی- بیرونی- پهٔ بهر پورې تړلے-

دٔ باندې:(د-بان-دې)صفت- (۱)دٔ پاسه- دٔ بره- (۲)غالب- فاتح- ګټور- (۲)بهر- پرېیا- ورچینې- زرچنې-

دباؤ:(د-باؤ)اسم- واحد- مذکر- طاقت- زور- اختیار- اثر-

دباوول:(د-با-و-ول)مصدر متعدی- (۱)زور ورکول- زورل- (۲)دٔ رعب لاندې راوستل- ویرول-

دباوون:(د-با-و-ون)حاصل مصدر- وګورئ دباوول-

دباوونکے:(د-با-و-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دباوونکی- مؤنث دباوونکې- وګورئ دباوول-

دباوونګ:(د-با-و-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دباوول-

دباوونه:(د-با-و-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دباوول-

دباوونے:(د-با-و-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دباوونی- مؤنث دباوونې- وګورئ دباوول-

دباوېدل:(د-با-وې-دل)مصدر لازم- (۱)دٔ زور لاندې راتلل- لاندې کېدل- ټیټېدل- (۲)وېرېدل- دباؤ کېدل- رعب لاندې راتلل-

دباوېدن:(د-با-وې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دباوېدل-

دباوېدنګ:(د-با-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دباوېدل-

دباوېدنه:(د-با-وې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دباوېدل-

دباوېدونکے:(د-با-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دباوېدونکی- مؤنث دباوېدونکې- وګورئ دباوېدل-

زبر"(ځ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ة"(ز-ره)، ځ"(پو-ښې-دهٔ)

دباوېدهٔ:(دَ-با-وې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ دباوېدل-

دبب:(دَ-ببِ)اسم- واحد- مذكر- شيطان-

دبچه:(دَب-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تبچه- تپچه- يوه آله چې د مرز پهٔ شان آواز وباسي-

دبدب:(دَب-دَب)صفت- مذكر- دبدبه- رعب داب- شان و شوكت-

دبدبه:(دَب-دَ-به)صفت- مؤنث- دبدب- رعب داب- شان و شوكت- ټيس ټپاس- عظمت-

دب دړكه:(دَب-دَ-ړَ-كه)اسم- واحد- مؤنث- دُوړه دباړ- دباړ- دُوړه ديكه- دب دړيكه- اخ ړب- دړكه-

دب دړيكه:(دَب-دَ-ړی-كه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دب دړكه-

دبدوب:(دَب-دوب)اسم- واحد- مذكر- زورنه- دبكې دړكې- پهٔ چا ستركې راوكښنه-

دبدوز:(دَب-دوز)اسم- واحد- مذكر- غلبېل- چاڼ-

دبړ:(دَ-بړ)اسمِ صفت- واحد- مذكر- ځرب- غوښن- شلنډ- غټ- تړی- كلك- پېړ- مضبوط-

دبړے:(دَ-به-ړے)اسم- واحد- مذكر- آلهٔ تناسُل- غين- غڼ- غيڼ-

دبز:(دَ-بز)اسمِ صفت- واحد- مذكر- ړبز- شلنډ- چاغ- مزے-

دبزنګ:(دَب-زنګ)اسم- واحد- مذكر- خنډ- زخه- منډو- دَ لرګی هغه برخه چې پهٔ اسانه نهٔ ماتيږی-

دبكه:(دَب-كه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دبكه- دمكی- (۲)وېرونه- (۳)زور اچونه- دباړ كونه-

دبكر:(دَب-كَر)اسمِ صفت- واحد- مذكر- دَ څرمنې كوپې او بالونه جوړونكے- جمع دبكران-

دبل:(دَ-بل)مصدرِ متعدی- پلنول- دربل- پهٔ زمكه پلنول-

دبلكے:(دَب-لَ-كے)اسمِ تصغير- واحد- مذكر- عطردان- دَ عطرو ساتلو وړوكے ډبے-

دبله:(دَب-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طبله- تبله- (۲)دَ لوهارانو دَ اوزار كېښودو دَ لرګی جوړ صندوق- جمع دبلې-

دبله مار:(دَب-له-مار)اسم صفت- واحد- مذكر- دوپېره مار- دوكړی مار- دبله غړونكے- طبله غړونكے-

دبلی:(دَب-لی)اسم- واحد- مؤنث- ډبه- ډبی- چكی-

دبلے:(دَ-بهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع دبلی- مؤنث دبلې- وګورئ دبل-

دبلے:(دَب-لے)اسم- واحد- مذكر- (۱)ډبلے- ډبے- (۲)دَ لوخې څنډے- دَ لوخې ګل يا وړے-

دبن:(دَ-بن)حاصلِ مصدر- وګورئ دَبل-

دبنګ:(دَ-بنګ)اسم صفت- واحد- مذكر- دَ لوړ قد و قامت څښتن- لوئ قد و قامت لرونكے- جمع دبنكان- مؤنث دبنګه-

دبنګ:(دَ-بنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ دبل-

دبنه:(دَ-بهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ دبل-

دبونكے:(دَ-بون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع دبونكی- مؤنث دبونكې- وګورئ دبل-

دبو:(دَ-بو)اسم صفت- واحد- مذكر- وګورئ ډبو-

دبوب:(دَ-بوب)اسم- ډوزې- لونی- خان ښئينه- لاپې-

دبوبے:(دَ-بو-بے)صفت- واحد- مذكر- ډوزمار- لاپو- خان ښيُونكے-

دَ بوډی ټال:(دَ-بو-ډی-ټال)اسم- واحد- مذكر- شين زرغن- دَ بوډی كنی- هغه رنګينه كرښه چې دَ باران او دَ نمر دواړو پهٔ موجودګئ كښې پهٔ اسمان دَ ټال پهٔ شكل جوړيږی-

دَ بوډی كنی:(دَ-بو-ډی-كهٔ-نی)اسم- وګورئ دَ بوډی ټال-

دبوك:(دَ-بوك)اسم صفت- واحد- مذكر- بې خونده- بې كاره- بې غېرته-

دبول:(دَ-بَ-ول)مصدرِ متعدی- دربول- وهل- ټكول- كوزار وركول-

دبولے:(دَ-بَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع دبولی- مؤنث دبولې- وګورئ دبول-

دبون:(دَ-بَ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ دبول-

دبونكے:(دَ-بَ-وون-كے)اسمِ فاعل- واحد- مذكر- جمع دبونكی- مؤنث دبونكې- وګورئ دبول-

دبونګ:(دَ-بَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ دبول-

دبونه:(دَ-بَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ دبول-

دبه:(دَ-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ډبه- كُبی- كُپی- دَ تېلو لوښے- دَ څرمنې نه جوړه دَ تېلو كوپی- (۲)داغ-

دبه:(دَ-به)اسم صفت- واحد- مذكر- دَ كوسه ضد- ګړ- هغه سړے چې ګڼه ږيره لری- بب ږيرے-

دبېدر:(دَ-بې-در)اسم- واحد- مذكر- يو ښكاری مارغهٔ چې دَ باز نه هم زورور وی-

دبی:(دَ-بی)اسم- واحد- مؤنث- كچه مېوه چې پهٔ پاڼو يا بوسو كښې پخه كړے شی-

دبی لله:(دَ-بی-له-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ زمكې درې ګټيزه ټوټه-

دبے:(دَ-بے)اسم- واحد- مذكر- (۱)دبه- ډبے- ډبه- دَ څرمنې جوړ لوښے چې تېل يا غوړی وغېره پكښې ساتلے شی- (۲)څوباړے- سوټے- تپنے- دَ جامو وينځلو لرګے-

دپ:(دُپ)اسم- واحد- مذكر- خوپ- نوژن تاؤ- دُپتيا- ړوب-

دَپ:(دُپ)اسم- واحد- مذكر- درب- كبل- شمه- شمخه- دله- غنډوړے- سركړے- سركيړے- سريكه- ويكه- مټه- پنې- ملې- مندارو- دمرم- (افغانستان)-

دپ:(دپ)اسمِ صوت- دَ څهٔ څيز دَ پرېوتو آواز-

دپ:(دپ)صفت- پورې- بند-

دٔ پاسه:(دٔ-پا-سه)متعلق فعل/صفت- (۱)باندې- پورته- (۲)علاوه- سربېره- سرباری-

دپتیا:(دپ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- دپ- بوب-

دپ دوپ:(دپ-دوپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پټ- پناه- (۲)دٔ وهلو آواز- (اسم صوت)-

دپړه:(دپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- چپه- څپه- لهر- دٔ هوا تېزه چپه-

دپړې:(دپ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- اپړې دپړې- انکا بنکا-

دپړی:(دپ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دٔ موسیقۍ یو قسم آله- دوکړې-

دپ سپ:(دپ-سپ)اسم- دبکې شپکې- دباؤ- دړکې- گواښ-

دپ غپ:(دپ-غپ)اسم- واحد- مذکر- پناه- غپ- اخوا-

دپکارل:(دپ-کا-رل)مصدر متعدی- دتکارل- کپشکارل- توکارل- لمسول- زر اچول- پارول- سپی ته شپېلۍ وهل- سپی دٔ حملې دٔ پاره تیارول-

دپکارلے:(دپ-کا-رٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ دپکارل-

دپکارن:(دپ-کا-رن)حاصل مصدر- وګورئ دپکارل-

دپکارنګ:(دپ-کا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ دپکارل-

دپکارنه:(دپ-کا-رٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دپکارل-

دپکارونکے:(دپ-کا-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ دپکارل-

دپکه:(دپ-که)اسم- واحد- مؤنث- دړکه- رعب داب- دباؤ-

دپکه دړکه:(دپ-که-دړ-که)اسم مرکب- دړکه- دبدبه- زورنه توکنه- زبره ترهه- چغربه کونه- پهٔ چا آواز رااېستنه-

دپکه شپکه:(دپ-که-شپ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دپکه دړکه-

دپول:(دٔ-پ-ول)مصدر متعدی- ښخول- دباوول- پهٔ زمکه کښې ننه ایستل-

دپولے:(دٔ-پ-ؤ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ دپول-

دپون:(دٔ-پ-ون)حاصل مصدر- وګورئ دپول-

دپونکے:(دٔ-پ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ دپول-

دپونګ:(دٔ-پ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دپول-

دپونه:(دٔ-پ-ؤ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دپول-

دپه هوا:(دٔ-په-هه-وا)اسم- واحد- مؤنث- بنده هوا- حبسه هوا-

دپه:(دٔ-په)اسم- واحد- مؤنث- دفع- منع- منې- مخه نیونه-

دپیازه:(دپ-یا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه خوارهٔ چې دٔ پیازو او غوښې نه جوړ وی- (۲)ټکولے شوے پرپوس چې پوخ کړے شوے وی-

دپېدل:(دٔ-پې-دل)مصدر لازم- ښخېدل- پهٔ زمکه کښې ننه ایستلے کېدل- دباوېدل-

دپېدلے:(دٔ-پې-دٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ دپېدل-

دپېدن:(دٔ-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دپېدل-

دپېدنګ:(دٔ-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دپېدل-

دپېدنه:(دٔ-پې-دٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دپېدل-

دپېدونکے:(دٔ-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ دپېدل-

دپېدهٔ:(دٔ-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ دپېدل-

دت:(دت)اسم صفت- (۱)ګنګس- دد- (۲)اودهٔ- غبی- جوګیر- دوت-

دتکارل:(دت-کا-رل)مصدر متعدی- لمسول- پاڅول- تحریکول- پرول- پارول- (م- هندی)-

دتکارلے:(دت-کا-رٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع دتکارلی- مؤنث دتکارلې- وګورئ دتکارل-

دتکارن:(دت-کا-رن)حاصل مصدر- وګورئ دتکارل-

دتکارنګ:(دت-کا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ دتکارل-

دتکارنه:(دت-کا-رٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دتکارل-

دتکارونکے:(دت-کا-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دتکارونکی- مؤنث دتکارونکې- وګورئ دتکارل-

دټ دټ:(دټ-دټ)اسم صوت- دٔ ژړا آواز-

دٔ تاپې شپه:(دٔ-تا-پې-شپه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ بیماری سخته شپه- دٔ ناروغۍ سخته شپه-

دٔ تاټ خاوند:(دٔ-تاټ-خا-وند)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لوئ نظرې- شان شوکت لرونکے- (۲)هغه سړے چې جواری ئې اچولې وی-

دجال:(دٔ-جال)اسم- واحد- مذکر- (۱)کاذب- پهٔ یوه سترګه ړوند- (۲)پهٔ آخره زمانه کښې پیدا کېدونکے یو انسان چې خلق به ګمراه کوی- خردجال- جدال- (۲-۲)چلباز- ټګ- چلولی- (م- عربی)-

دٔ جوارو ړوډی:(دٔ-جو-وا-رو-ړو-ډی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- جوارینه- سکرک- هغه ړوډی چې دٔ جوارو دٔ اوړو نه پخه شوې وی-

دٔ جوارې دانه:(دٔ-ج-وا-رې-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه دانه چې جواری پرې کولے شی- دانه-

دٔ جوړونو درد:(دٔ-جو-ړو-نو-درد)اسم مرکب- مذکر- دٔ پښو او بندونو درد- داسې درد چې دٔ وجود هر جوړ او بند ترې خوږېږی-

دٔ خوزو کوړے:(دٔ-خو-زو-کو-ړے)اسم- مذکر- ترنجبین- ترنګبین- فلوس- دٔ غز او خوزو دانې- (افغانستان)-

دچ:(دچ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بچ-

دٔ چا دٔ کوځې خاوړې:(دٔ-چا-دٔ-کو-څې-خاؤ-رې)اسم- دٔ ملکانو یوه لوبه-

دچار:(دٔ-چار)اسم صفت- واحد- مذکر- دڅار- ګرفتار- اخته- ککړ- مبتلا- کېر-

دچرګو کوټنې:(دٔ-چر-ګو-کو-ټ-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ چرګ خالے-

دٔ چغې ړول:(دٔ-چغٔ-غې-ړول)اسم- واحد- مذکر- هغه ړول چې دٔ جنګ یا بل مصیبت پهٔ وخت غږولے شی-

دٔ چغې میر:(دٔ-چغٔ-غې-میر)اسم صفت- واحد- مذکر- دٔ حملې پهٔ وخت

دَ لښکر مشر- سرلښکر-

دَ چڼې ګونګړی:(دَ-چَ-ڼې-ګونګ-ړی)اسم- جمع- مذکر- چولې- دَ چڼې نه پاخهٔ شوی ګونګړی- ټپوسے-

دچه:(دهٔ-چه)اسمِ صوت- دَ بزو شړلو آواز-

دچه:(دهٔ-چه)صفت- دبدبه- شان و شوکت-

دچه:(دَ-چه)اسم- واحد- مذکر- دَ خربوزې، کدو یا هندوانې دوبچه- جووه- چو- چره- دوچه-

دَ ځېلمې:(دَ-ځېل-مې)صفت- ټول- کلهم- زاړه-

دخالت:(دَ-خا-لت)اسم- مداخله- ګډېدنه- دَ چا پهٔ کار کښې لاس وهنه- لاس وهنه-

دخانیات:(دَ-خا-نیات)اسم- جمع- مذکر- دتوتون (یو ډول نیکوټین لرونکے بوټے) چې پهٔ سګرېټو څښلو کښې پکارولے شی- (افغانستان)-

دَ خدایٔ اوښه:(دَ-خدایٔ-اُو-ښه)اسم- واحد- مؤنث- یو خزنده- بی بی اوښه- اښکے- شین رنګ لرونکے یو غټ مُلخ-

دَ خدایٔ میاشت:(دَ-خدایٔ-میاشت)اسم- واحد- مؤنث- دَ هجرې کال اوومه میاشت- بزرګه میاشت- دَ رجب میاشت-

دَ خاړرو تېل:(دَ-خاړ-رو-تېل)اسم- مذکر- خاورین تېل- هغه تېل چې پهٔ ډیوو او لالټېنونو کښې بلولے شی- دَ سوزولو یو قسم تېل- کیروسین آئل-

دَ خسو سړے:(دَ-خَ-سو-سَ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې خشاک پهٔ بیه راوړی-

دخل:(دَ-خل)اسم- واحد- مذکر- (۱)رسېدهٔ- رسېدنه- رسائی- (۲)پته- خبر-

دخمه:(دَخ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګټ- ګوښه- کُنج- دَ پټېدو ځایٔ- (۲)قبر- ګور- مړېستون- (۳)پټونے- کمین ګاه- دَ غلو ځایٔ-

دخول:(دُ-خول)اسم- (۱)داخلېدنه- (۲)جنسی فعل- کوروالے- دَ خروج ضد-

دخیل:(دَ-خیل)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)لاس لرونکے- داخل- داخل شوے- شامل- ورګډ- ورننوتے- (۲)برخه لرونکے- برخه اخستونکے-

دخې:(دهٔ-خې)اسم- جمع- مؤنث- چخې- دَ سترګو خیرے- دَ پوزې خیرے-

دد:(دَد)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بې هوشه- نشه- دت- ګنګس-

دد:(دَد)اسم- واحد- مذکر- ځناور- داړونکے ځناور- بڼ ماهو- روے-

ددا:(دَ-دا)اسم صفت- واحد- مذکر- وګوره داډا-

ددورے:(دَ-دَو-رے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- کمزورے او خوار سپے- تپ او مانده سپے-

ددهٔ:(دَ-دهٔ)ضمیر- اضافی ضمیر چې دَ نژدې مذکر دَ پاره استعمالیږی-

دَ دوی:(دَ-دوی)ضمیر- اضافی ضمیر چې دَ نژدې مذکر، مؤنث او جمع دَ پاره استعمالیږی-

دَ دې:(دَ-دې)ضمیر- اضافی ضمیر چې دَ نژدې مؤنث دَ پاره استعمالیږی-

دَ دې کبله:(دَ-دې-که-بَه-له)متعلق فعل- نو ځکه- لهٔ دې کبله- پهٔ دې سبب-

در:(دَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)کور- دروازه- دړه- تمبه- (۲)ورځخه- قبضه کښې- درلودنه- لرنه-

در:(دَر)اسمِ ضمیر- هغه ضمیر چې مخاطب ئې لهٔ خپله اړخه وائی- لکه "زهٔ به درشم"-

دَر:(دَر)اسم- مذکر- مرغلره- ملغلره-

دراڅښے:(دَراڅ-ښے)اسم- څریکې- څریکې- دَ نمر پلوشې-

دراز:(دَ-راز)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مېز خانه- پهٔ مېز کښې جوړ شوے دَ سامان ایښودو ځایٔ- (۲)اوږد- لوی-

درازه:(دَرا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لویٔ ړنده- درزنده- دَ نوې پېدا شوی ماشوم پهٔ سر کښې هغه ځایٔ چې ډېر نرم وی- (۲)زلزله- رېږدله-

دَراستول:(دَر-اَس-ته-وَل)مصدرِ متعدی- وګورئ استول-

درازی:(دَ-را-زی)اسم- مؤنث- ارتوالے- وُږدوالے- پراخی-

دراک:(دَ-راک)اسم صفت- واحد- مذکر- زیرک- هوښیار- تېز فهمه-

دراکه:(دَرا-که)اسم- واحد- مؤنث- بکیاڼه- دَ یوې ونې نوم- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ بکیاڼه-

درام:(دَرام)اسم- (۱)وګورئ ډرام- (۲)دَ غټ یا درونډ څیز دَ غُرځېدو اواز- (اسم صوت)-

درامد:(دَر-آ-مد)اسم- واحد- مذکر- هغه مال چې دَ بهر نه ملک ته راشی-

دَ راموسې غوټه:(دَ-را-مو-سې-غو-ټه)اسم- مؤنث- نافه- خوشبویٔ-

درانته:(دُ-ران-ته)اسم- واحد- مؤنث- کرنټه- یو خاص قسم بوټے چې دَ چمن یا کور نه ګېر چاپېر لکه دَ دېوال کرلے شي- درانټه-

درانټه:(دَ-ران-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ درانته-

درانجے:(دَران-جے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو دَ یوې لوبې نامه-

دراند:(دَراند)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ درونډ-

درانده:(دَران-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ ګډو یوه بیماری چې پکښې ئې اینه خرابیږی-

درانهٔ:(درا-نهٔ)اسمِ صفت- جمع- مذکر- (۱)وزنی- دَ سپکو ضد- (۲)پېټی- بارونه- بوج- (۳)سخته- سختی (۴)درونډ-

دراوڼ:(دَرا-وڼ)اسم- واحد- مذکر- داوڼ- داوڼے- پړونے- ټیکرے- دُوپے-

دراوے:(دَرا-وے)اسم- واحد- مذکر- نښه- نښانه- ځایٔ- ټاکلے شوے ځایٔ- مقرر ځایٔ-

درانی:(دَ-را-نی)اسم- واحد- مؤنث- کناوېز- قناوېز- یو ورېښمین ټوکے-

درب:(دَرب)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو ډول واښهٔ چې پهٔ ښوره او خشکه زمکه کښې پېدا کیږی-

درب:(دَرب)اسمِ صوت- دَ څهٔ څیز دَ غرځېدو آواز- دَ څهٔ څیز دَ پرېوتو آواز-

دربا:(دَر-با)اسمِ صوت- دَ څهٔ دَ راپرېوتو یا راغرځېدو اواز- درب دروب-

دربار:(دَر-بار)اسمِ صوت- وګورئ دربهار-

دربار:(دَر-بار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دلبار- شاهی ماڼی- شاهی قصر- دَ بادشاه دَ فېصلو مخصوص ځایٔ چې پکښې دَ عوامو سره لیدهٔ کاتهٔ او پهٔ

"ی" (څې-زَل)، "ې"(هې-ره-وَل)، "ی"(پیا-لې)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

نور معاملو بحث کوي- دَ ستانه دارو یا سپدانو کور- جمع دربارونه-

درباري:(دَر-بَا-رِي)اسم صفت- واحد- مذکر- دربار سره منسوب- دلباري-

دربان:(دَر-بان)اسم صفت- واحد- مذکر- څوکیدار- پهره دار- دروانچي- دَ دروازې څوکیدار- جمع دربانان-

دربانچي:(دَر-بان-چي)اسم صفت- واحد- مذکر- دربان- دروانچي- پهرې وان- پهرېدار- جمع دربانچیان-

درباني:(در-با-ني)اسم- مؤنث- دَ دربان پېشه یا کار-

دربچه:(دَر-بَه-چه)اسم- واحد- مؤنث- دریچه- درځه- دریڅه- وړه کړکۍ-

دربدر:(در-به-در)اسم صفت- واحد- مذکر- در پهٔ در- سرګردان-

درب دربانے:(دَرَب-دَرَه-بَا-نے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم لوبه- الله داد-

درب دروب:(دَرَب-دَرُوب)اسم صوت- وګورئ دربا-

دربدري:(در-بَ-دَ-ري)اسم- مؤنث- خواري- غریبي- مفلسي- سرګرداني-

دربړ:(دَرَ-بَړ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)چاغ- مړے- غټ- څوربړ- شلنډ- غوټ- غوښن- دبړ- پړیړ- مضبوط- پهٔ بدن مضبوط- (۲)هغه څوک چې تېز او چست تلے نهٔ شي-

دربژن:(دَرَب-ژن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- باسي- دوپیا- سخا- مؤنث دربژنه-

دربښت:(در-بښت)اسم- واحد- مذکر- یو ډول لوبه-

دربل:(دَرَ-بل)مصدر متعدي- (۱)تخته کول- کښېمنډل- (۲)پښه پهٔ زمکه پهٔ زوره وهل- پهٔ پښو یو څیز تخته کول-

دربلو:(دَرَ-بَ-لو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دربلي-

دربلول:(دَر-بَه-لَه-ول)مصدر متعدي- ښکېل کول- دَ څاروی مخکښې او وروستو پښې سره تړل-

دربلولے:(دَر-بَه-لَه-وَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع دربلولي- مؤنث دربلولې- وګورئ دربلول-

دربلون:(دَر-به-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ دربلول-

دربلونکے:(دَر-به-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دربلونکي- مؤنث دربلونکې- وګورئ دربلول-

دربلونګ:(در-به-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دربلول-

دربلونه:(در-به-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دربلول-

دربله:(دَرَ-لَه)اسم- واحد- مذکر- (۱)دربړه- تروسه- دَ څاروو دَ پښو لاندې سخته شوې سره- (۲)کلک شوے خیرے- کلک شے- (۳)کنده- بدبویه- (۴)بېکله- بدره- بېسله-

دربڼه:(دَر-بَ-له)اسم- واحد- مؤنث- توره تیارهٔ- تورتم- ډېره تیارهٔ-

دربلېدل:(دَر-به-لې-دَل)مصدر لازم-(۱)ښکېل کېدل- ښکېلېدل- بندېدل- جړېدل- تړلے کېدل- (۲)غرقېدل- نقصاني کېدل- پهٔ بده اخته کېدل-

دربلېدلے:(دَر-به-لې-دهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- جمع دربلېدلي- مؤنث دربلېدلې- وګورئ دربلېدل-

دربلېدن:(دَر-به-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دربلېدل-

دربلېدنګ:(دَر-به-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دربلېدل-

دربلېدنه:(دَر-به-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دربلېدل-

دربلېدونکے:(دَر-به-لې-دُون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- جمع دربلېدونکي- مؤنث دربلېدونکې- وګورئ دربلېدل-

دربلېدهٔ:(دَر-به-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دربلېدل-

دربلي:(دره-به-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ دربو پښو مېز یا چوکۍ- (۲)درې پرېز تال- دَ دربو لرګیو نه جوړ هغه تال چې دَ لسی غوړکه پکښې رااوېزانده وي- (۳)خوشحالي- دَ خوشحالۍ ترپکې- دَ خوشحالۍ درنجکې-

دربلے:(دره-بهٔ-لے)اسم مفعول صفت- واحد- مذکر- وګورئ دربل-

دربلے:(دَر-به-لے)اسم- واحد- مذکر- خولنه- ببړۍ- دَ پښو کړې- جمع دربلي-

دربن:(دَره-بن)حاصل مصدر - وګورئ دربل-

دربند:(در-بند)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غرونو پهٔ منځ کښې تنګه لار- (۲)تاقچه- تاخچه- (افغانستان)-

دربنګ:(دره-بنګ)حاصل مصدر- وګورئ دربل-

دربنه:(دره-بهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دربل-

دربني:(دره-به-ني)صفت- واحد/جمع- مؤنث- خامه زمکه- هغه زمکه چې پهٔ کرځېدو سره دربېږي-

دربول:(دره-به-ول)مصدر متعدي- (۱)وبول- وهل- ټکول- څشتول- (۲)پښې ترپول- پښې وهل- پښې ټکول- (۳)څنډل- څنل- (۴)ډول وهل- ډول ډبول- دزل غږول-

دربولل:(در-بو-لل)مصدر متعدي- دربلل- څان ته راغښتل- مخاطب خپل څان ته رابلل- دعوت ورکول-

دربولن:(در-بو-لن)حاصل مصدر- وګورئ دربولل-

دربولنګ:(در-بو-لنګ)حاصل مصدر- وګورئ دربولل-

دربولنه:(در-بو-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دربولل-

دربولونکے:(در-بو-لون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دربولل-

دربون:(دره-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ دربول-

دربونکے:(دره-بون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- جمع دربونکي- مؤنث دربونکې- وګورئ دربل-

دربونکے:(دره-به-وون-کے)اسم فاعل/صفت- وګورئ دربول-

دربونګ:(دره-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دربول-

دربونه:(دره-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دربول-

دربوهٔ:(دره-به-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ دربول-

دربه:(در-به)اسم- واحد- مذکر- نوکر- دربان-

دربه:(دره-به)اسم- واحد- مؤنث- تندر- ټکه- اسماني بجلي-

(۲)توره تیاره- تورتم- لړه- دوند- (۳)شور- زوږ- (۴)جړې- (افغانستان)-

دربه دروبه:(دره-به-درو-به)اسم- مرکب- وګورئ دربهار

دربهار:(دره-بهار)اسم صوت- درب دروب- د وهلو ټکولو اواز- دربار- دربه دروبه-

دربې:(دره-بې)اسم- جمع- مؤنث- لاټې شاټې- پوزې- غورې- لوټې- غټې خبرې- دربې دروبې-

دربې دروبې:(دره-بې-درو-بې)اسم- جمع- مونث- وګورئ دربې-

دربېدل:(دره-بې-دل)مصدر لازم- (۱)ډبېدل- دبېدل- درزېدل- وهلے کېدل- (۲)په قهر کېدل- (۳)زړۀ رپېدل- زړۀ درزېدل-

دربېدلے:(دره-بې-دۀ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- جمع دربېدلی- مؤنث دربېدلې- وګورئ دربېدل-

دربېدن:(دره-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دربېدل-

دربېدنګ:(دره-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دربېدل-

دربېدنه:(دره-بې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دربېدل-

دربېدونکے:(دره-بې-دون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- جمع دربېدونکی- مؤنث دربېدونکې- وګورئ دربېدل-

دربېدۀ:(دره-بې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ دربېدل-

دربیش:(در-بیش)اسم- واحد- مذکر- (۱)درویش- د وریژو د اوړو نه جوړ د پوړی په شکل یو خوراک- (۲)د خوړو یو قسم-

دربیله:(در-بې-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دربله-

دربیلی:(در-بې-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بانیچغ- بانډیچغ-

دربیے:(در-بیے)اسم- واحد- مذکر- ماتې- شکست-

دربیے:(دره-بیے)اسم- وګورئ دربهار-

درپړې:(درپ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- درپړې- دانې- لړلې- ګرمکې- په بدن د خارښت په وجه یا د څۀ نورې بیمارۍ له کبله پیدا کېدونکې پولې-

درپړے:(درپ-ړے)اسم- واحد- مذکر- د مچو کور- د مچو ساتلو صندوق- جمع درپړی-

درپړه:(در-پړه)صفت- نایاب- کمیاب- انجروت-

در په در:(در-پۀ-در)صفت- بې کوره- سر وهلے بر وهلے- در په دیکه-

در په دیکه:(در-پۀ-دی-که)صفت- وګورئ در په در-

درپیه:(در-پیه-یه)اسم- واحد- مؤنث- اندرپایه- زینه- اړکینه- پټه- پوړی- سپړی-

درت:(د-رت)اسم- واحد- مذکر- په ختیځې کلاسیکې موسیقۍ کښې د یو تال معین سرعت چې د بلمپت او مد وروستو وی- (افغانستان)-

درتلل:(در-تلل)مصدر- (۱)د مخاطب خوا ته تلل- د مخاطب په لور تلل- (۲)د چا په څۀ پوهېدل-

درتللے:(در-تلۀ-لے)اسم صفت/مفعول- واحد- مذکر- جمع درتللی- مؤنث درتللې- وګورئ درتلل-

درتلن:(در-تلن)حاصل مصدر- وګورئ درتلل-

درتلنګ:(در-تلنګ)حاصل مصدر- وګورئ درتلل-

درتلنه:(در-تلۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درتلل-

درتلونکے:(در-تلون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- جمع درتلونکی- مؤنث درتلونکې- وګورئ درتلل-

درتلۀ:(در-تلۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ درتلل-

درته:(در-ته)ضمیر مخاطب- تا له- تا ته- درله- د مخاطب د پاره استعمالېدونکې کلمه- ستا د پاره-

درج:(درج)اسم- واحد- مذکر- لیکلے- په کتاب کښې شامل- په رجسټر کښې ختلے-

درج:(درج)اسم- واحد- مذکر- دبلے- هغه صندوق چې پکښې کالی اېښوے شی- وړوکے صندوق-

درجن:(در-جن)اسم- واحد- مذکر- درخن- دولس ځیزونه-

درجول:(در-جه-ول)مصدر متعدی- ثبتول- لیکل- خېژول- په لیک کښې راوستل- خایول- نغښتل- پېچل-

درجولے:(در-جه-وۀ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- جمع درجولی- مؤنث درجولې- وګورئ درجول-

درجون:(در-جه-ون)حاصل مصدر- وګورئ درجول-

درجونکے:(در-جه-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- جمع درجونکی- مؤنث درجونکې- وګورئ درجول-

درجونګ:(در-جه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ درجول-

درجونه:(در-جه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درجول-

درجوۀ:(در-جه-وۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ درجول-

درجه:(در-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ځاې- (۲)رتبه- عهده- منصب- مرتبه- (۳)عزت- (۴)اندازه- (۴)پوړ- جمع درجې-

درجه بندی:(در-جه-بن-دی)اسم- واحد- مؤنث- په درجه کښې وېشنه- د صفت او قیمت مطابق جدا کونه- د درجې ټاکنه- د اندازې ټاکنه-

درجه وار:(در-جه-وار)صفت- درجه په درجه- پوړی په پوړی- وار په وار-

درجېدل:(در-جې-دل)مصدر لازم- ثبتېدل- داخلېدل- په کتاب کښې لیکلے کېدل- کتاب یا رجسټر ته ختل-

درجېدلے:(در-جې-دۀ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- جمع درجېدلی- مؤنث درجېدلې- وګورئ درجېدل-

درجېدن:(در-جې-دن)حاصل مصدر- وګورئ درجېدل-

درجېدنګ:(در-جې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ درجېدل-

درجېدنه:(در-جې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درجېدل-

ئ (ځې-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

درچېدونکے:(دَر-چې-دُون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- جمع درچېدونکی- مؤنث درچېدونکې- وګورئ درچېدل-

درچېدهٔ:(دَر-چې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ درچېدل-

درخَن:(دَر-خَن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ درچن-

درخې:(در-خَې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کاسیره- پلیته- زناکاره- (۲)کرکوړه- کورکوړه- ګوګوشتکه- کوګړې-

درچک:(در-چک)صفت- مذکر- برچک- زیات ړک-

درچکه:(درچ-که)اسم- واحد- مؤنث- ارغوچکه- ترپکه- درینچکه- دانګه- درنچکه- ټوپ وهنه- دانګنه-

درچل:(دَره-چِل)مصدر- پرنجېدل- ترنجېدل- پرنزېدل- ترل- اینګے اچول- انتروشے اچول-

درچِل:(دَر-چِل)صفت- پهٔ یو مخ روان- پرله پسې- جاری- روان- چلان-

درچلے:(دَره-چهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درچل (۱)-

درچن:(دَره-چَن)حاصلِ مصدر- وګورئ درچل-

درچنګ:(دَره-چَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ درچل-

درچنه:(دَره-چهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ درچل-

درچول:(دَره-چه-وَل)مصدر متعدی- (۱)پرنجول- ترنجل- پرنزول- پهٔ چا اینګی اچول- (۲)پهٔ زور سره خوخول-

درچولے:(دَره-چه-وهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درچول-

درچون:(دَره-چه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ درچول-

درچونکے:(دَره-چُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درچل (۱)-

درچونګ:(دَره-چه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ درچول-

درچونه:(دَره-چه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ درچول-

درچوهٔ:(دَره-چه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ درچول-

درڅخه:(دَر-څه-خه)ضمیر مخاطب- درسره- تاسره- تاڅخه-

درڅه:(دَر-څه)اسم- واحد- مؤنث- درڅه- موری- کولک- روشندان- پهٔ کوټه کښې دَ هوا او رڼا دَ پاره جوړ شوے سورے-

درخاست:(دَر-خاست)اسم- واحد- مذکر- (۱)عرضی- درخواست- (۲)خواهش- غوښتنه-

درخاستی:(دَر-خاس-تی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ درخواستی-

درختن:(دَر-خه-تَن)اسم- واحد- مذکر- همدمی- صحبت- مباشرت-

درخته:(دَرخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وَنه- درخت-

درخش:(ده-رَ-خَش)اسم- واحد- مذکر- بریښنا- چمک- ځرک- پرق-

درخشان:(ده-رَخ-شان)صفت- مذکر- ځلېدونکے- روښان- درخشنده-

درخشنده:(ده-رَخ-شَن-ده)صفت- وګورئ درخشان-

درخواست:(دَر-خاست)اسم- واحد- مذکر- عرض- عرضی- ګذارش- وګورئ درخاست-

درخواستی:(دَر-خاس-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)عریضه- غوښتن لیک- (۲)غوښتنه- درخاستی-

درخه:(در-خه)متعلق فعل- دلته- دېخوا-

درد:(دَرد)اسم- واحد- مذکر- (۱)درد- خوږ- ځړیکه- بریښ- (۲)سوخت- قهر- غصه- (۳)خور- کړاؤ- مصیبت-

درد:(دَرد)اسم- واحد- مذکر- ختیځ- کونوبے- دَ مایعاتو رسوب- (افغانستان)-

دردا:(دَر-دا)اسم- واحد- مذکر- زار- ټاپ- افسوس- ارمان-

دردانه:(دَر-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ مرغلرې دانه- (۲- صفت)- قیمتی څیز-

دردالان:(در-دا-لان)اسم- واحد- مذکر- زنان خانه- بېټک- دَ خاصو مېلمنو دَ ناستې ځاې-

دردآمیز:(دَرد-آ-میز)صفت- (۱)دردونکے- دردناک- درد نه ډک- دَ سوز نه ډک- (۲)مؤثر-

در در:(دَر-دَر)اسم صوت- (۱)پهٔ یو مخ دَ اُبو دَ ځاڅکو اواز- درهار- (۲- صفت) مسلسل- پرله پسې- تېز تېز-

دردره:(دَر-ده-ره)اسم صوت- درار- درارے- درور-

دردری:(دَر-ده-ری)اسم- واحد- مؤنث- نواره- دَ اُبو فواره-

دردسر:(دَر-د-سَر)اسم مرکب- بغېر دَ څهٔ وجې مصیبت- بغېر دَ څه وجې زحمت- دَ سر درد- سرخوږے-

دردک:(دَر-دَک)صفت- وران شوی (پېیٔ یا ماستهٔ)- وران- تخې تخې-

دردمن:(دَرد-مَن)صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)دردېدلے- دړدېدلے- دړدمن- دردمند- (۲)دَ قهره ډک- (۲)خشک-

دردمند:(دَرد-مَند)صفت- واحد/جمع- مذکر- وګورئ دردمن-

دردمندی:(دَرد-مَن-دی)اسم- واحد- مذکر- تکلیف- درد- خوږ- دردمنی- دردمنتوب-

دردمنی:(درد-مهٔ-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دردمندی-

دردناک:(درد-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ درد نه ډک- درد لرونکے- دړدېدلے- خوږ- دردمند-

درد و غم:(دَر-دو-غم)اسم مرکب- دړد و غم- غم درد- تکلیف- خوږ-

دردول:(دَر-ده-وَل)مصدر متعدی- دړدول- خوږول- کړول- دړمن کول- (۲)غصه کول- سوختول-

دردولے:(دَر-ده-وهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دردول-

دردون:(دَر-ده-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ دردول-

دردونکے:(دَر-ده-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دردول-

دردونګ:(دَر-ده-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ دردول-

دردونه:(دَر-ده-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ دردول-

دردېدل:(دَر-دې-دَل)مصدر لازم- (۱)دړدېدل- خوږېدل- تنګېدل-

دړد رسېدل- کړېدل- (۲)غصه کېدل- سوختېدل- قهرېدل-

دردېدلے:(دَر-دې-دهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دردېدل-

دردېدن:(دَر-دې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ دردېدل-

دردېدنګ:(دَر-دې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ دردېدل-

دردېدنه:(دَر-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دردېدل-

دردېدونکے:(دَر-دې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دردېدل-

دردېدهٔ:(دَر-دې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دردېدل-

درړ:(دُ-رړ)اسم- واحد- مذکر- دَ زنانو يو قسم کالے-

درړول:(در-ړه-وَل)مصدر متعدی- پهٔ منډه کول- پهٔ مخه اخستل- پهٔ تړړه کول- بې خايه تکليف ورکول-

درړولے:(در-ړه-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درړول-

درړون:(در-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درړول-

درړونکے:(در-ړه-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درړول-

درړونګ:(در-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درړول-

درړونه:(در-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درړول-

درړوهٔ:(در-ړه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درړول-

درړه:(در-ړه)اسم- واحد- مؤنث- منډه- زغاسته- تړړه- تراټ- ړبل- خغل- زغاښت-

درز:(دَرز)اسم- واحد- مذکر- (۱)چاود- چود- چوند- (۲)درغوړ- سپاچه- تنکاچه- دبځه- دونکاچه-

درز:(دَرز)اسم صوت- واحد- مذکر- (۱)درځ- دَ ځهٔ دروند څيز دَ غرزېدو يا چاودو اواز- غرز- (۲)شان و شوکت- شهرت-

درزا:(دَره-زا)اسم صوت- دَ درزېدو اواز- درزهار-

درزا دروز:(دَره-زا-دَروز)اسم صوت- وګورئ درز درز/ درز دروز-

درز درز:(دَرز-دَرز)اسم صوت- دَ مسلسل پرېوتو، وهلو يا دربلو اواز-

درز دروز:(دَرز-دَروز)اسم- (۱)درز غوبل- درز غرب- درز درز- (۲)شان و شوکت- لوئ دبدبه- (۲)قدر عزت- خاطر مدار-

درزغن:(دَرز-غن)اسم- واحد- مذکر- درغن- دَ لواړې مصالحې اوړولو هوار کاڼے-

درز غوبل:(دَرز-غو-بَل)اسم- (۱)غوبمنډ- شور وُ شر- مله ګله- غوبل- چغې چغارې- مڼ کوکار- (۲)وهل ټکول- ټېل بار- راکښل تړل-

درزنده:(دَر-زن-ده)اسم- واحد- مذکر- لونبړنده- دَ غرهٔ هوار سر- درزنے-

درزنے:(دَر-زه-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ درزنده-

درزول:(دَره-زه-وَل)مصدر متعدی- درزول- وهل- ټکول- ګرزول-

درزولے:(دَره-زه-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درزول-

درزون:(دَره-زه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درزول-

درزونکے:(دَره-زه-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درزول-

درزونګ:(دَره-زه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درزول-

درزونه:(دَره-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درزول-

درزوهٔ:(دَره-زه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درزول-

درزه:(در-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)موری- سُوری- (۲)درز- چاود- جمع درزې-

درزهار:(دَره-زار/دَره-زه-هار)اسم صوت- وګورئ درزار-

درزی:(در-زی)اسم- واحد- مذکر- جامې ګنډونکے- خياط-

درزيتوب:(در-زی-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ درزی کار-

درزېدل:(دَره-زې-دَل)مصدر لازم- (۱)ړزېدل- وهل کېدل- ټکېدل- ړبېدل- (۲)جړقېدل- پرله پسې درزا کېدل-

درزېدلے:(دَره-زې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درزېدل-

درزېدن:(دَره-زې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درزېدل-

درزېدنګ:(دَره-زې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درزېدل-

درزېدنه:(دَره-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درزېدل-

درزېدونکے:(دَره-زې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درزېدل-

درزېدهٔ:(دَره-زې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ درزېدل-

درزے:(دَره-زے)اسم- وګورئ درزا-

درس:(دَرس)اسم- واحد- مذکر- (۱)سبق- لُست- مطالعه- زدکړه- تعليم- علم- (۲)عبرت- پند- پانيات- پنيات- (۲)جماعت- مدرسه-

درسال:(در-سال)اسم- واحد- مؤنث- درشه- چوکاټ- دَرشائی- دَ دروازې چوکاټ-

درست:(دَرُست)صفت- ټيک- صحيح- سم- راست- موزون-

درست:(دَرُست)صفت- ټول- واړه- کلهم- سالم- روغ- واړه- ګړد- ثابت-

درستن:(دَ-رَس-تَن)اسم- (۱)سامان- (۲)سينګار-

درستناک:(دَرست-ناک)صفت- مذکر- خطرناک-

درستوالے:(دَرُست-وا-لے)صفت- مذکر- ټيک والے- صحيح والے- سموالے- جوړوالے- روغوالے- برابروالے- برابرے-

درستوالے:(دَرُست-وا-لے)صفت- مذکر- بشپړوالے- ټولوالے- پوره والے-

درستول:(دَرَس-ته-وَل)مصدر متعدی- (۱)ټيک کول- سمول- درست کول- سيخول- روغول- جوړول- ګردول- (۲)وټېل (عموماً دَ کلمې)-

درستول:(دَرَس-ته-وَل)مصدر متعدی- پوره کول- تمامول- بشپړول-

درستون:(دَرَس-ته-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درستول-

درستون:(دَرَس-ته-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درستول-

درستونکے:(دَرَس-ته-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درستول-

درستونکے:(دَرَس-ته-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درستول-

درستونګ:(دَرَس-ته-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درستول-

درستونګ:(دَرَس-ته-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درستول-

ـئ (څی-رل)، ـې (مې-ره-وَل)، ـی (پيا-لی)، ـے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

درستونه:(دَرَس-ته-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ درستول-

درستونه:(دَرَس-ته-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ درستول-

درستوۀ:(دَرَس-ته-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ درستول-

درستوۀ:(دَرَس-ته-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ درستول-

درسته:(دَرَس-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وسله- (۲)ترکش- دَ غشيو کېښودو کڅوړه- (۳)غنچه- (۴)ټوله- دَ درست مؤنث-

درستی:(دَرَس-تی)صفت- (۱)سموالے- روغوالے- ټيک والے- (۲)صداقت- رښتنوالے-

درستېدل:(دَرَس-تې-دل)مصدرِ لازم- ټيک کېدل- صحيح کېدل- سمېدل- جوړېدل- رغېدل- (۲)وټلے کېدل- (عموماً دَ کلمې)-

درستېدل:(دَرَس-تې-دل)مصدرِ لازم- پوره کېدل- مکمل کېدل- تمامېدل-

درستېدن:(دَرَس-تې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ درستېدل-

درستېدن:(دَرَس-تې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ درستېدل-

درستېدنګ:(دَرَس-تې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ درستېدل-

درستېدنګ:(دَرَس-تې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ درستېدل-

درستېدنه:(دَرَس-تې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ درستېدل-

درستېدنه:(دَرَس-تې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ درستېدل-

درستېدونکے:(دَرَس-تې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درستېدل-

درستېدونکے:(دَرَس-تې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درستېدل-

درستېدۀ:(دَرَس-تې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- ګورئ درستېدل-

درستېدۀ:(دَرَس-تې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ درستېدل-

درستے:(دَرَس-تے)اسم- واحد- مذکر- رښتينے ګواه- شاهد- حقيقی شاهد- شهادت کونکے-

درسره:(دَر-سه-ره)ضمير مخاطب- درڅخه- تا سره-

دَ رسول کچکول:(دَ-رَ-سول-کچ-کول)اسم- واحد- مذکر- پۀ اسمان کښې هغه غلور ستوری چې يوځائې راځيژی-

درسه:(در-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ درڅخه-

درسی:(دَر-سی)صفت- درس سره تعلق لرونکے- دَ درس- درس ته منسوب-

درسيم:(در-سيم)صفت- ثالث- منځګړے- دريم ګړے- روغه کونکے-

درش:(درش)اسم- واحد- مذکر- يو قسم وړد بادرنګ-

درشاهی:(دَر-شا-هی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ درشل-

درشايه:(در-شا-يه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ درشل-

درشائی:(در-شا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ درشل-

درشته:(دَ-رَش-ته)اسم- واحد- مؤنث- درويشته- دَ اُربشې بوس-

درشتی:(دَ-رَش-تی)اسم- مذکر- سختی- کلکوالے- بې رحمی- بدخوئی-

درشل:(دَر-شل)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ دروازې چوکاټ- درسال- درشاهی- درشايه- (۲)يو قسم ساګ چې دَ کندنې پۀ شان وی- جمع درشلې-

درشن:(دَر-شن)اسم- واحد- مذکر- کتنه- لېدنه- ديدن- (۲)نمائش- فېشن- ځان ښودنه-

درشنې:(در-شنې)اسم- واحد- مذکر- ځرشندے- کورے-

درشنی:(در-شه-نی)صفت- واحد- مذکر- درشن کونکے- ځان ښودونکے- مؤنث درشنې- جمع درشنيان-

درشول:(در-شول)اسم- واحد- مذکر- يو قسم بوټے چې خواړۀ ګلونه لری او دَ شاتو مچې ورله راځی-

درشونړے:(در-شون-ړے)اسم- واحد- مذکر- وربوز- شونړک- سونړک- (افغانستان)-

درشهوار:(دُر-ر-شه-وار)اسم- واحد- مذکر- دَ مرغلرې ښۀ قسم- ښۀ مرغلره- قيمتی مرغلره-

درښت:(درښت)صفت- ټينګوالے- پائېداری-

درښتن:(دَ-رښ-تن)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښېګړه- نېکی- ښۀ- فائده- (۲)مرسته- پره-

درغريبی:(دَر-غه-ری-بی)اسم مرکب- (۱)غريبی- عاجزی- نېستی خواری- کمزوری (۲)خواری مزدوری- خواری خسکی-

درغړې:(دَر-غه-ړې)صفت- ترغنې- چچ پچ- پۀ يو ځائې يا لږ ځائې کښې ډېر زيات-

درغزن:(دَ-رغ-زن)اسم- واحد- مذکر- درغڼ- درغن- دَ مرچ مصالحې مېده کولو هوار کاڼے- پلنه ډبره- دَ کاڼی تخته- شياخه- شياخه- (۲)پلنونه- تخته کونه- (۳)پتاری- هغه تخته چې مړی ورباندې لمبوی-

درغستل:(در-غس-تل)مصدر- غولول- تېرايستل- تېرباسل-

درغستلے:(دَر-غس-تۀ-لے)مفعول/صفت- وګورئ درغستل-

درغستن:(دَر-غس-تن)حاصلِ مصدر- وګورئ درغستل-

درغستنګ:(دَر-غس-تنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ درغستل-

درغستنه:(دَر-غس-تۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ درغستل-

درغستونکے:(در-غس-تون-کے)فاعل/صفت- وګورئ درغستل-

درغستۀ:(در-غس-تۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ درغستل-

درغل:(در-غل)صفت- (۱)کوټه- کلپ- (۲)منافق- دروغژن- (۳)پرېشان- خوار- زورېدلے- (۴)ګېر- محاصره- احاطه- بند-

درغلتوب:(دَر-غل-توب)اسم- واحد- مذکر- ټګی- چل- دوکه-

درغلتيا:(در-غل-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ درغلتوب-

درغلندی:(در-غه-لن-دی)اسم- منافقت- درغلی- دوه رنګی-

درغلندے:(در-غه-لن-دے)صفت- (۱)دوکه باز- چلولی- (۲)خيانت ګر-

درغلنه:(در-غه-لۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- منافقت- دوه رنګی- درغلی-

زبر "(خ-بۀ-ره)" زورکے "(شل)"، پېښ "(نو-کا-ره)"، زبر "(ک-تاب)"، جزم "(شکون)"، ۀ "(ز-ړه)"، ۀ "(ډو-بې-دۀ)"

خيانت- ټګي- چلبازي- چل- دروغ‌ته-

درغلول:(دَر-غه-له-وَل)مصدر متعدی- (۱)ناقلاره کول- بې تابه کول- (۲)راګېرول- رااېسارول-

درغلولے:(در-غه-له-وهٔ-لے)مفعول/صفت- جمع درغلولی- مؤنث درغلولې- وګورئ درغلول-

درغلون:(در-غه-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درغلول-

درغلونکے:(دَر-غه-له-وون-کے)فاعل/صفت- جمع درغلونکی- مؤنث درغلونکې- وګورئ درغلول-

درغلونګ:(در-غه-له-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درغلول-

درغلونه:(دَر-غه-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درغلول-

درغلوهٔ:(دَر-غه-له-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درغلول-

درغله:(در-غه-له)صفت- چلباز- ټګ- ټګی ژن-

درغلی:(دَر-غه-لی)اسم- واحد- مؤنث- ټګی- منافقت- چَل- چلبازی- چلول- ټګی ټوری-

درغلېدل:(در-غه-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)نيول کېدل- ګېرېدل- محاصره کېدل- ايسارېدل- (۲)ناقراره کېدل- بې ارامه کېدل- نارامه کېدل- (افغانستان)-

درغلېدلے:(در-غه-لې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- جمع درغلېدلی- مؤنث درغلېدلې- وګورئ درغلېدل-

درغلېدن:(دَر-غه-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درغلېدل-

درغلېدنګ:(دَر-غه-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درغلېدل-

درغلېدنه:(دَر-غه-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درغلېدل-

درغلېدونکے:(دَر-غه-لې-دون-کے)فاعل/صفت- وګورئ درغلېدل-

درغلېدهٔ:(در-غه-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درغلېدل-

درغلے:(در-غه-لے)صفت- وګورئ درغله

درغلے:(در-غهٔ-لے)مفعول- حاضر شوے- موجود-

درغن:(در-غن)اسم- واحد- مذکر- درغزن- درغڼ-

درغنے:(در-غه-نے)صفت- (۱)ګڼه ګوڼه- ازدحام- ببر و بار- (۲)اسم- پائېکو-

درغڼ:(در-غڼ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ درغزن-

درغنه:(در-غَ-نه)اسم- خچ پيچ- درغړې-

درغنې:(در-غه-نې)متعلق فعل- غاړه غټې- (دَ جنګ پهٔ حالت کښې)-

درغوړه:(دَر-غو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم بوټے چې دَ لښتو نه يې جاروګانې جوړولے شي-

درغوړ:(دَر-غوَړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوړه- سورے- درز- دروړ- (۲)دَ ښاروزی لر شان غوړ پرېکونه- (۳)دَ منښتې ښاروے- نذری پسهٔ-

درغول:(در-غول)اسم- واحد- مذکر- (۱)پارچاړ- پرچاړ- اکل- دَ اُبو دَ پرېښودو ځاے- پهٔ نهر يا وله کښې دَ زياتی اُبو دَ پاره جوړه شوې موری- (۲)تنګه دره- کنډاؤ- وټ- غټ- تنګے-

درغول:(در-غه-وَل)مصدر متعدی- ښويول- نغوتول- دوکه کول- تېر باسل- تېرايستل-

درغول برغول:(دَر-غول-بَر-غول)صفت- تس نس- ګډوډ- درهم برهم- پېچيده-

درغولول:(در-غو-له-وَل)مصدر متعدی- دَ نهر يا ولې اُبهٔ پهٔ ناکه يا موری کښې پرېښول-

درغولون:(در-غو-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درغولول-

درغولونګ:(در-غو-له-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درغولول-

درغولونه:(در-غو-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درغولول-

درغولوونکے:(دَر-غو-له-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درغولول-

درغولوهٔ:(در-غو-له-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درغولول-

درغولېدل:(دَر-غو-لې-دَل)مصدر لازم- پهٔ درغول کښې اُبهٔ ايله کېدل- دَ نهر يا ولې اُبهٔ پهٔ ناکه يا موری پرېښولے کېدل- (افغانستان)-

درغولېدن:(دَر-غو-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درغولېدل-

درغولېدنګ:(دَر-غو-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درغولېدل-

درغولېدنه:(دَر-غو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درغولېدل-

درغولېدونکے:(دَر-غو-لې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درغولېدل-

درغولېدهٔ:(در-غو-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ درغولېدل-

درغون:(در-غه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درغول-

درغونکے:(دَر-غه-وون-کے)فاعل/صفت- وګورئ درغول-

درغونګ:(در-غه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درغول-

درغونه:(دَر-غه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درغول-

درغوهٔ:(دَر-غه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درغول-

درغېدل:(در-غې-دَل)مصدر لازم- نغوتېدل- ښوئېدل-

درغېدلے:(در-غې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درغېدل-

درغېدن:(در-غې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درغېدل-

درغېدنګ:(در-غې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درغېدل-

درغېدنه:(در-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درغېدل-

درغېدونکے:(دَر-غې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درغېدل-

درغېدهٔ:(در-غې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ درغېدل-

درک:(دَ-رک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ دروازې رېک (رپ)- (۲)دَ خونې غولے- دَ کور غولے- انګڼ- (۳)پته- نښه- نښانه- بولګه- پته لګته- پته لګته- نښه نښانه-

درک:(دَ-رَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډېر سوړے شوے لرګے چې په ورخ کښې د اُبو د تقسیمولو د پاره ایښودل کیږی- د اُبو خله- د اُبو د دانې سوړے- (۲)موقع- وخت- ځاے-

درک:(دَرک)اسم- واحد- مذکر- فهم- پوهه- قابلیت- پوهېدنه- تمیز- پېژندنه- هغه معلومات چې انسان ته د احساس په وسیله د چاپېرچل نه معلومیږی-

درکار:(در-کار)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې زیړ ګل او سپین بېخ لری-

درکړ:(دَ-ر-کړ)اسم- واحد- مذکر- د بګی (ټانګې) د پایې ګرده حلقه- د کاړی ګرده الغه-

درکړی:(دره-که-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د څارویو د ساتلو ځاے- غوجل- آغل-

درکے:(دَر-کے)اسم- واحد- مذکر- د مرزانو د نیولو جال- لومه- کړکی-

درک:(دَرَک)اسم صوت- د زړه د حرکت اواز- درب- (۲)د پښو اواز- ښکالو- (۲- اسم- واحد- مذکر-)خنګل-

درک:(درګ)صفت- د ژور ضد- (۲)په هوار ځاے کښې لږ وچت ځاے- بڼق ځاے- (۲)ترنګلے- ترینګلے-

درګا:(دَر-ګا)اسم- واحد- مذکر- د بلاول ټاټ یو پینځه سُری راګ چې د وئیلو وخت ئې د غرمې دوه بجې دے، د شپې هم وئیلے شی-

درګا:(دَره-ګا)اسم صوت- دربهار- دربار- دربے-

درګاه:(دَر-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)استانه- دربار- (۲)دروازه- د دروازې خله- دُرشل- ور بوے- (۲)زیارت- مزار- روضه- خانقاه-

درګد:(دَر-ګد)اسم- غنې ایښودنه- ازغی ایښودنه- غنې تاوونه- د غنو وېره- د غنو منډوړ-

درګرده:(دَر-ګر-ده)صفت- مسلسل- پرله پسې- یو بل پسې- متواتر-

درګړ:(دَر-ګړ)صفت- جوت- جوړ- نمبروار- پرله پسې-

درګړ:(دَره-ګړ)اسم- واحد- مذکر- هغه پېړ او غټ لرګے چې د کوټې په منځنۍ برخه اچولے کیږی- لاړے- لهړے- تیر- ګودره-

درګړې درګړې:(دَرَګ-ړې-دَرَګ-ړې)صفت- ټوټې ټوټې- دړې دړې- ذرې ذرې- (۲)ډېر سترے- غمژن- (۲)تَس نَس- ګډوډ- وران ویجاړ-

درګوټے:(در-ګو-ټے)اسم- واحد- مذکر- د لوخو وړوکے ځنګل- د کړکیو وړوکے ځنګل-

درګه:(دَر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غوړګه- ډک کړکے- نچه- ډک نل- (۲)د شړو ځنګل- د لوخې ځنګل-

درګه:(درَه-ګه)اسم- واحد- مؤنث- د بېړی د راکښلو پړے- (۲)منډه تړړه- زغاښت- رګه-

درګهار:(دَرَګ-هار)اسم صوت- دربار- دربهار- درب- دروب- دربے- دربا- درګا-

درکی:(دَر-کی)اسم- مؤنث- درې- درې خاله لرونکې د تاش پته- دربکی-

درکے:(دَره-کے)اسم صوت- (۱)درګهار- (۲)په منډه کښې د پښو یو بل پسې مسلسل اوازونه-

درل:(دَ-رل)مصدر- وګورئ دربېدل-

درلل:(دَر-لل)مصدر- لرل- څه څیز باندې قبضه لرل- څه څیز په قبضه کښې کېدل-

درلنکی:(دَر-لنګ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ درلنکے-

درلنکے:(دَر-لنګ-کے)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې غوایان ورسره تړلے شوی وی او غوبل پرې کولے شی- موړے- درمولے-

درلودل:(دَر-لو-دَل)مصدر- وګورئ لرل-

درلودلے:(دَر-لو-دَه-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ لرل/درلودل-

درلودنه:(دَر-لو-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ لرل/درلودل-

درلودونکے:(دَر-لو-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ لرل/درلودل-

درلوده:(دَر-لو-دَه)حاصل مصدر- وګورئ لرل/درلودل-

درلوول:(دَر-لو-وَل)مصدر- وګورئ لرل-

درلوولے:(دَر-لو-وَه-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درلودل/لرل-

درلوونکے:(دَر-لو-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درلودل/لرل-

درلوونه:(دَر-لو-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ درلودل/لرل-

درلوونے:(دَر-لو-وو-نے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- درلوونکے- لرونکے-

درله:(دَر-له)ضمیر مخاطب- وګورئ درته-

درله:(دَر-لَه)حاصل مصدر- درلوده- وګورئ درلل-

درم:(دَرَم)اسم صوت- (۱)د توپې غړز- د توپې اواز- (۲)د څه غټ او درونډ څیز د غرځېدو اواز- (۲)د ډولکی اواز- (۴- اسم- واحد- مذکر-) دبدبه- شان و شوکت- رعب- (۵)پشتی- د دېوال پشتی-

درم:(دِ-رَم)اسم- واحد- مذکر- د یوې سکې نوم- درهم- (م- عربی)-

درم:(دَ-رَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دین او ایمان- (۲)مذهب- (م- هندی)-

درمان:(در-مان)اسم- واحد- مذکر- علاج- دوائی- دارو- دار و مدار- (فارسی)-

درمانده:(در-مان-ده)صفت- واحد- مذکر- (۱)حاجتمند- ضرورتمند- عاجز- بېچاره- غریب- بې وسه- (۲)ستړے ستومانه-

درمب:(دَرَمب)اسم صوت- وګورئ درم- د ډولکی وغېره اواز- درمبا-

درمبا:(دَرَم-با)اسم صوت- وګورئ دربهار/درم-

درمبول:(دَرَم-به-وَل)مصدر متعدی- (۱)ډولکے غړول- (۲)وهل- ټکول- په پښو باندې څه څیز وهل/کښېمنډل-

درمبولے:(دَرَم-به-وَه-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درمبول-

درمبونکے:(دَرَم-به-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درمبول-

درمبونه:(دَرَم-به-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ درمبول-

درمبهار:(دَرَم-به-هار)اسم صوت- وګورئ دربهار- (۲)د ډولکی د غړولو پرله

پسې اواز- یو مخیز اواز-

درمبېدل:(درَم-بې-دَل)مصدر لازم- (۱)ړولکے غړېدل- (۲)دَ څهٔ څیز دَ پاسه ټوپونه وهل یا کښېمنړلے کېدل- تخته کېدل-

درمبېدنه:(درَم-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درمبېدل-

درمبېدونکے:(درَم-بې-دون-کے)فاعل صفت- واحد- مذکر- وګورئ درمبېدل-

درمبېدهٔ:(درَم-بې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ درمبېدل-

درمټ:(دُر-مټ مټ)اسم- واحد- مذکر- دَ کچه او پوله ځائ دَ کښیمنړلو یوه درنه آله- دَ کاڼو ټکولو دَ اُسپنې درنه آله-

درمسال:(دَ-رَم-سال)اسم- واحد- مذکر- دَ هندوانو عبادت خانه-

درمغول:(دَر-مه-غول)صفت- مذکر- ګډوډ- وران ویجاړ- خراب تراب- اخوا دېخوا-

درمکښ:(درَم-کښ)اسم- واحد- مذکر- دَ اُسپنې وړه ستن چې دَ خرزنو کټې او خرڅوری پرې ګنډلے شي-

درمل:(دُر-مل)اسم- مذکر- هغه مېوه چې پوره پخه شوې نهٔ وی- نیم پخته- کچه مېوه- (۲)خوانی ته نژدې چې لا ئې ږیره نهٔ وی راغلې- خوانکے- ژېکے-

درمل:(دُر-مل)تابع مهمل- دَ دارو تابع مهمل- علاج دارو- دوا-

درملتوب:(دَرّ-مل-توب)اسم- واحد- مؤنث- ډاکټری- طبیبی- دَ دارو درملو کار- (افغانستان)-

درملتون:(دَر-مل-تون)اسم- واحد- مؤنث- دواخانه- دَ دارو دُکان- (افغانستان)-

درملګر:(دَر-مل-ګر)اسم- واحد- مذکر- ډاکټر- معالج- طبیب- (افغانستان)-

درملیار:(دُر-مل-یار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ درملګر- (افغانستان)-

درملے:(دُر-مهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ درملګر- (افغانستان)-

درمن:(دَر-من)صفت- مذکر- وګورئ درمند-

درمند:(دَر-مند)اسم- واحد- مذکر- درمن- راټول شوے فصل او غله- هغه ځائ چې غله او فصل پکښې دَ مېده کولو دَ پاره راغونډ کړے شوے وی-

درمنده:(دَر-من-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ سنیو غنډارے- دَ ځنی ځرخنے- درینده- (۲)سرپیچک- سرتړونے-

درمندے:(دَر-من-دے)اسم- واحد- مؤنث- هغه دانې چې دَ درمند نه پس پاتې شوی وی- دَ درمند تلے- رش تلے- پاتې شوې دانې-

درمول ړل:(دُر-مَل-ړل)اسم- واحد- مذکر- هغه ځائ چې نچې او لوخې پکښې کیږی-

درمولے:(دَر-مو-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے یا ستن چې دَ غوبل کولو پهٔ وخت دَ څارویو دَ پاره بنخولے شي- دَ غوبل ستن- درنګلے-

درمه:(دَر-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نل- نے- کړکے- نچه- هغه بنډړ چې منځ ئې تش وی- (۲)دَ ټوپک شپېلی- دَ ټوپک میل- (۲)خوانی- دَ انسان ځېره- ونه- قد-

درناوے:(دره-نا-وے)صفت- (۱)درونډوالے- (۲)احترام- عزت-

درنجکه:(دَرن-جه-که)اسم- واحد- مؤنث- ټوپ وهنه- دانګه- درنچکه- جمع درنجکې-

دَ رنجوکانے:(دَ-رن-جو-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ توتیا-

درنجے:(دَرن-جے)کلمه- (۱)دَ باران غنډولو کلمه- بارانے- (۲)ارګوړی برګوړی- امینکی-

درند:(دَرند)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ درمند- (۲)دَ یوې غرنیزې ونې نوم چې دَ ګېلاس پهٔ شان وی

درندسترګے:(دَرند-ستر-ګے)صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې نظر ئې لګی یعنی بل چا ته چې ترې نقصان رسي- درونډسترګے- بدسترګے- غړندے-

درندوالے:(دَرند-وا-لے)صفت- مذکر- وګورئ درونډوالے-

درندول:(دَرن-ده-وَل)مصدر متعدی- وګورئ درونډول/درنول-

درنده:(دَ-رن-ده)اسم- واحد- مذکر- داړونکے- ماتونکے ځناور-

درنده:(دَ-رَن-ده)اسم- واحد- مؤنث- ورېدونکې وریځ- هغه وریځ چې باران ترې اوری-

درندے:(دَرن-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ بزو دُ اینې او کولمو ناروغی-

درندېدل:(دَرن-دې-دَل)مصدر لازم- وګورئ درونډېدل/درنېدل-

درنښت:(دَره-نښت)اسم- (۱)درونډوالے- (۲)عزت- درناوے-

درنګ:(دَرنګ)اسم- واحد- مذکر- وقفه- ډیل- ایسارېدنه- تمېدنه- (۲)کان- معدن- (۳)صفت- وُچه کلکه او هواره زمکه- (۴ اسم صوت) دَ رباب اواز- ترنګ- ټنګ-

درنګا:(دَرنګ-ګا)اسم صوت- وګورئ درنګهار-

درنګ درونګ:(دَرنګ-درُونګ)اسم صوت- دَ موسیقی دَ ساز اواز- شرنګ شرونګ- ټنګ ټونګ- ترنګ ترونګ-

درنګلے:(دَرنګ-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې غوایان ورپورې تړلے شوی وی او غوبل پرې کولے شي- دَ غوبل ستن- درمولے-

درنګول:(دَرنګ-ګه-وَل)مصدر متعدی- ترنګول- ټنګول- شرنګول- دَ رباب نه اواز وېستل- رباب غږول-

درنګولے:(دَرنګ-ګه-وهٔ-لے)مفعول صفت- واحد- مذکر- وګورئ درنګول-

درنګون:(دَرنګ-ګه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درنګول-

درنګونکے:(دَرنګ-ګه-وون-کے)فاعل صفت- واحد- مذکر- وګورئ درنګول-

درنګونګ:(دَرنګ-ګه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درنګول-

درنګوهٔ:(دَرنګ-ګه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درنګول-

درنګه:(دَرنګ-ګه)صفت- واحد- مؤنث- مردار شوے حېوان- مرداره- لاش- سخره-

درنګهار:(درنګ-ګه-هار)اسم صوت- شرنګهار- ترنګهار- ترنګا- ټنګهار- ټنګار-

درنګېدل:(دَرَنګ-ګې-دَل)مصدر لازم- شرنګېدل- ټنګېدل- ترنګېدل-
درنګېدلے:(دَرَنګ-ګې-دَه-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درنګېدل-
درنګېدن:(دَرَنګ-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درنګېدل-
درنګېدنګ:(دَرَنګ-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درنګېدل-
درنګېدنه:(دَرَنګ-ګې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ درنګېدل-
درنګېدونکے:(دَرَنګ-ګې-دُون-کے)فاعل/صفت-واحد- مذکر- وګورئ درنګېدل-
درنګېدهٔ:(دَرَنګ-ګې-دَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ درنګېدل-
درنواله:(دَرَن-وا-له)اسم- دروندواله- (۱)لوئ والے- شرافت- (۲)درندوالے- درنښت-
درنول:(دَره-نه-وَل)مصدر متعدی- (۱)عزت ورکول- قدر ورکول- قدرمند کول- (۲)وزن زیاتول- دروندول-
درنون:(دَره-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ درنول-
درنونکے:(دَره-نه-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درنول-
درنونګ:(دَره-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درنول-
درنونه:(دَره-نه-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ درنول-
درنوهٔ:(دَره-نه-وَهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درنول-
درنه:(دَره-نه)صفت- (۱)دَ دروند مؤنث- (۲)سخته او خرابه بیماری-
درنه:(دَر-نه)ضمیر مخاطب- درڅخه- درځنې- درچخه- درشکه-
درنه مار:(دَر-نه-مار)اسم- واحد- مذکر- جلاد- جلات- قتل کونکے- وژونکے-
درنېدل:(دَره-نې-دَل)مصدر لازم- عزت زیاتېدل- عزتمند کېدل- (۲)وزن زیاتېدل- دروند کېدل-
درنېدن:(دَره-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درنېدل-
درنېدنګ:(دَره-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درنېدل-
درنېدنه:(دَره-نې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ درنېدل-
درنېدونکے:(دَره-نې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درنېدل-
درنېدهٔ:(دَره-نې-دَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ درنېدل-
درو:(درو)اسم- مذکر- وګورئ دروَه-
درواز:(دَر-واز)صفت- مذکر- (۱)ترهور- ترور- وارخطا- (۲)نسکور- پړمخ- سرچپه-
دروازګی:(دَر-وا-زه-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړه دروازه-
دروازه:(دَر-وا-زه)اسم- واحد- مؤنث- ټمبه- ور- دړه- جمع دروازې-
درواغ:(دَر-واغ)اسم- مذکر- دروغ- (افغانستان)-
درواغژن:(دَر-واغ-ژن)صفت- مذکر- وګورئ دروغژن- (افغانستان)-
دروان:(دَر-وان)اسم- واحد- مذکر- دربان- ورساتونکے- پېره دار- دروانچې-
دروانچې:(دَر-وان-چې)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دروان/دربان-
دروب:(دَرُوب)اسم صوت- دَ څهٔ څیز دَ پرېوتو اواز- دَ یو څیز دَ بل څیز سره دَ جنګېدو آواز-
دروبڼ:(دَرُو-بڼ)اسم- دَ مېلمنو دَ دارمدار کړاؤ- دَ مېلمستیا زحمت- (افغانستان)-
دروپت:(دُ-رو-پت)اسم- یوه لرغونې مشکله سندره- دروپد- درپت- دهرپد-
دروت:(دُ-رُوت)اسم- مذکر- وګورئ دُرت-
درود:(دُ-رُود)اسم- واحد- مذکر- دَ صلوٰة؛ برکت او سلامتیا دعا چې دَ نبی علیه السلام دَ نوم اورېدو سره دَ رحمت دَ طلب دَ پاره لُستے شی- صفت- ستائنه- دعا- تعریف- رحمت- صلواة- تحسین- شاباسے- سلام- (فارسی)-
درودګر:(دَ-رُود-ګر)اسم- واحد- مذکر- ژرنده کړے-
درور:(دَرُور)اسم- واحد- مؤنث- ایندرور- ندرور- دَ خاوند خور-
دروړن:(دُر-وه-ړن)اسم- واحد- مذکر- یو ېږل بوټے چې جاروګانې ترې جوړولے شی- دروړنګ-
دروړنګ:(دَر-وه-ړنګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دروړن-
درَوز:(دَروز)تابع مهمل- (۱)دَ درز تابع مهمل- وګورئ درز- (۲)اسم صوت- دَ توپې دَ چلېدو اواز- (۲)دَ څهٔ څیز دَ غرځېدو اواز-
دروزاره:(دَر-و-زا-ره)اسم- مؤنث- دروزه-
دروزګر:(دَروز-ګر)اسم- واحد- مذکر- (۱)نجار- ترکاڼ- لوهار- (۲)استکار-
دروزه:(دَرُو-زه)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ غنمو، اُربشو وغېره ېنېر چې زوی ترې جدا کړے شوی وی- دروزاره-
دَ روژې میاشت:(دَ-رو-ژې-میاشت)اسم- واحد- مؤنث- دَ هجری قمری کال نهمه میاشت- رمضان المبارک-
دروړ:(دَر-وړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دروړے-
دروړے:(دَر-وه-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ نذر یا منښتې څاروے- دروړ- نښه لرونکے دَ نذر څاروے-
دروګه:(دَرُو-ګه)اسم- واحد- مؤنث- شان شوکت- رعب داب- دبدبه-
دروګه:(دَرُو-ګه)اسم- واحد- مؤنث- بندوبست- غمخواری-
درول:(دَره-وَل)مصدر متعدی- (۱)ولاړول- لکول- نېغول- (۲)تم کول- تمول- ځنډول- متوقف کول- (۲)کاندیدول- (۴)مقررول- څارته کومارل- (افغانستان)-
درولے:(دَره-وَه-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درول-
دروم:(دَرَوم)اسم صوت- درب- درومب- دَ توپې اواز- دَ ټوپک دَ خلاصېدو اواز-
دروم:(دَرَوم)اسم- واحد- مذکر- دَ مارش قومانده- درومه- مرش- (افغانستان)-
درومل:(دَرُو-مَل)مصدر- تلل-
درومِلے:(دَرُو-مَه-لے)صفت/مفعول- واحد- مذکر- وګورئ درومل-
درومنه:(دَرُو-مَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ درومل-

دروموںکے:(درو-مون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دروړل-

درون:(در-ون)اسم- واحد- مذکر- هغه ځایٔ چې نچې او لوخې پکښې شنې شوې وي- نېزار- دروڼ- دروڼے-

درون:(د-رون)صفت- اندرون- دننه- زړهٔ- (فارسي)-

درون:(دره-ون)حاصل مصدر- وګورئ درزل-

دروند:(دروند)صفت- مذکر- (۱)زیات وزن لرونکے څیز- هغه څیز چې وزن يې زیات وي- (۲)باعزته- باوقاره- قدرمند- عزت مند- (۳)سنګین-

دروندبار:(دروند-بار)اسم مرکب- غیر ضروري سامان- (افغانستان)-

دروندبارے:(دروند-با-رے)اسم- دروندبار وړونکې وسیله- (افغانستان)-

درونـدوالـے:(دروند-وا-لـے)اسم- مذکر- (۱)درنښت- د وزن زیاتـوالـے- (۲)عزت-

دروندول:(درون-ده-ول)مصدر متعدي- وګورئ درنول-

دروندېدل:(درون-دې-دل)مصدر لازم- وګورئ درنېدل-

درونکے:(دره-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درول-

درونګ:(دره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ درول-

درونه:(دره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درول-

دروڼ:(در-وڼ)اسم- واحد- مذکر- د نچو (نلونو) ځنګل- نېزار- درزنے-

دروڼے:(د-رو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دروڼ-

دروه:(د-ره-وه)متعلق فعل- في الحال- فوراً- سمدستي- بې ځنډه-

دروه:(دروه)اسم- (۱)چل- ټګي- دوکه- غلونه- (۲)اندېښنه- ویره- بار-

دروهٔ:(دره-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درول-

دروهل:(درو-هل)مصدر متعدي- چا سره ټګي کول- غولول- دوکه کول- (۲)ځورول- پهٔ عذابول-

دروهلے:(درو-هٔ-لے)صفت/مفعول- واحد- مذکر- وګورئ دروهل-

دروهنه:(درو-هٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دروهل-

دروهول:(درو-هه-ول)مصدر متعدي- وګورئ دروهل-

دروهونکے:(درو-هون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دروهل-

دروهه:(درو-هه)صفت- چلباز- مکار- دوکه باز-

دروهېدل:(درو-هې-دل)مصدر لازم- (۱)خطا کېدل- غولېدل- (۲)ویرېدل- فکرمند کېدل-

دروهېدلے:(درو-هې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دروهېدل-

دروهېدن:(درو-هې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دروهېدل-

دروهېدنګ:(درو-هې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دروهېدل-

دروهېدنه:(درو-هې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دروهېدل-

دروهېدونکے:(درو-هې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دروهېدل-

دروهېدهٔ:(درو-هې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ دروهېدل-

دروهېل:(درو-هې-یل)مصدر- وګورئ دروهېدل/دروهل-

درویشت:(در-ویشت)اسم عدد- شل او درې- درې د پاسه شل- ۲۳-

درویشتم:(در-ویش-تم)صفت- مذکر- عددي صفت- د درویشت صفتي شکل-

درویشتمه:(در-ویش-تهٔ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د درویشتمې روژې شپه چې پکښې عبادتونه، دعاګانې او سورتونه لُستلے شي- د سورتونو شپه- (۲)د درویشتم مؤنث شکل-

درویشته:(در-ویش-ته)اسم- مؤنث- درشته-

درویزګر:(در-وېز-ګر)صفت- مذکر- فقیر- ګدا- سوالګر- چړګر- خېرات ټولونکے-

درویزه:(در-وې-زه)اسم- واحد- مؤنث- خېر ټولونه- خېر غښتنه- سوالګري-

درویش:(در-وېش)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خدایٔ ته رسېدلے- ولي- بزرګ- قلندر- فقیر- ملنګ- (۲)غریب- نېستمن-

درویشـي:(در-وې-شي)اسـم- مـؤنـث- (۱)د درویـش کـار- درویشـتـوب- (۲)غریبي- نېستمني-

درویغ:(در-وېغ)اسم- مذکر- دروغ- (افغانستان)-

درویے:(در-وے)اسم- مذکر- دورمه- نچه- نل-

دره:(د-ره)اسم- واحد- مؤنث- تنګے- ناوه- د دوؤ غرونو تر منځ ځایٔ-

دره:(د-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تازیانه- متروکه- (۲)کاکوړه-

درهار:(د-ره-هار)اسم صوت- (۱)د باران یا د ولې د ورېدو اواز- (۲)د اور د لمبو اواز-

درهدکې:(در-هد-کې)کلمه- د خېر کلمه چې د ماشوم یا د بل څیز د غرځېدو پهٔ وخت وئېلے شي- بسم الله- خېر-

درهم:(در-هم)اسم- واحد- مذکر- د دینار سلمه حصه- د سپینو زرو یوه سکه- وګورئ درم- جمع درهمونه-

درهم برهم:(در-هم-بر-هم)صفت- ګډوډ- وران ویجاړ- بې ترتیبه-

درهه:(در-هه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دم- دعا- دم درهه- (۲)جادو منتر- جمع درهې-

درهیسته والے:(در-هیس-ته-وا-لے)اسم- نژدې والے-

درنی:(در-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یوه ریښمینه کپړه- دریائی- کناویز-

دری:(د-ری)اسم- واحد- مؤنث- د پارسیانو ژبه- د تاجکو ژبه-

دریا:(در-یا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دریاب- (فارسي)-

دریا:(در-یا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دریه-

دریاب:(در-یاب)اسم- واحد- مذکر- (۱)رود- سیند- سین- سمندر- بحر-

دریابي:(در-یا-بي)صفت- (۱)دریاب ته منسوب- د دریاب متعلق- (۲)فراخ- ډېر زیات- نهٔ ختمېدونکے- (۲)ډېر سخي-

دریال:(در-یال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دریه-

دریانی:(در-یا-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګوئ درنی-

دریپل:(دری-پل)اسم- مذکر- اطریفل- اتریپل- یوه مشهوره یوناني دوا-

دریخ:(ده-ریخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)منبر- ممبر- لوړ ځایٔ- د ودرېدلو

خاي- (۲)ګډا- نڅا- دريس- (۳)موقف- استقامت-

دريځه:(دَ-ري-ځه)اسم- واحد- مؤنث- وړه کړکۍ- دريڅه- درڅه-

دريڅه:(دَ-ري-څه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دريځه- جمع دريڅې-

دريس:(دَريس)اسم- ګډا- نڅا-

دريم:(دَره-يَم/دَر-يَم/دَريم)صفت- مذکر- عددي صفت چې دَ دويم او څلورم تر منځ درجه يا رتبه ښائي- دَ درې صفتي شکل-

درينجې:(درين-جې)اسم- درينځې- زلزل- زلزله-

درينځې:(درين-ځې)اسم- واحد- مذکر- درينجې- دريندې- درينده-

درينچکه:(درين-چه-که)اسم- واحد- مؤنث- درنچکه- ارغوچکه- جمع درينچکې-

دريند:(دَريند)صفت- دروند- درون- دَ دروند بل قرأت-

درينده:(درين-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سرتړونے- سرپيچک- (۲)دَ ځنيو لړې- دَ ځنيو کلاوه- ځنې- سنې-

دريندے:(درين-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ پسونو دَ اينې شنې کېدو يو قسم بيمارې- درندے- درينځے-

درينګ:(دَرينګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځنګل- ګڼ ځنګل- (۲)صفت- سخته زمکه- (۲)کلک- سخت-

درينګل:(دَرينګ-ګل)مصدرِ متعدي- (۱)کښېمنول- سختول- خوړول- (۲)پهٔ يو ځيز کښې بل ځيز پهٔ زور منهل-

درينګلے:(دَرينګ-لے)صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ غصې پهٔ حالت کښې- (۲)بېر موړ- (۳)غټ پټ- جمع درينګلي-

درينګلے:(دَرينګ-ګهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درينګل-

درينګن:(دَرينګ-ګن)حاصل مصدر- وګورئ درينګل-

درينګنګ:(دَرينګ-ګنګ)حاصل مصدر- وګورئ درينګل-

درينګنه:(دَرينګ-ګهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درينګل-

درينګول:(دَرينګ-ګه-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)ټينګول- تخته کول- پلنول- دربل- پهٔ يو ځيز کښې بل ځيز منهل (ځايول)- (۲)کشکول (دَ رسۍ يا پړې)-

درينګولے:(دَرينګ-ګه-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درينګول-

درينګون:(دَرينګ-ګه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ درينګول-

درينګونکے:(دَرينګ-ګون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درينګل-

درينګونکے:(دَرينګ-ګه-وون-کے)فاعل/صفت- وګورئ درينګول-

درينګونګ:(دَرينګ-ګه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درينګول-

درينګونه:(دَرينګ-ګه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درينګول-

درينګوهٔ:(دَرينګ-ګه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ درينګول-

درينګه:(دَرينګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کلکه او سخته زمکه- (۲)يو قسم بيمارې- درينګ- درينګے-

درينګېدل:(دَرينګ-ګې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)ټينګېدل- تخته کېدل- سختېدل- (۲)دَ څهٔ ځيز دَ پاسه ګرځېدل- (۳)کشېدل- کشکېدل (دَ رسۍ يا پړې)-

درينګېدلے:(دَرينګ-ګې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درينګېدل-

درينګېدن:(دَرينګ-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درينګېدل-

درينګېدنګ:(دَرينګ-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درينګېدل-

درينګېدنه:(دَرينګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درينګېدل-

درينګېدونکے:(دَرينګ-ګې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درينګېدل-

درينګېدهٔ:(دَرينګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ درينګېدل-

درينګے:(دَرينګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ درينګه-

درينے:(دَري-نے)اسم- واحد- مذکر- سپېرمه- سپړمه- تمېزے-

دريو:(دَريو)صفت- سترګې پهٔ لار- منتظر-

دريه:(دَر-يه)اسم- واحد- مؤنث- دَ موسيقۍ يوه لرغونې آله- تمبل- چمبه- درياګۍ- دريال- داريال- جمع دريې/دريه ګانې-

درې:(دهٔ-رې)کلمهٔ تنفر- اخوا- لرې- ايسې- ځه-

درې:(دَرې)اسم عدد- دَ دوو او څلورو تر منځ عدد- ۳-

درې اتيا:(دَرې-اَت-يا)اسم عدد- دَ دوه اتيا او څلور اتيا تر منځ عدد- اتيا او درې- ۸۳-

درې اتيالس:(دَرې-اَت-يا-لس)اسم عدد- درې نوۍ- ۹۳- (افغانستان)-

درې اتيايم:(دَرې-اَت-يا-يَم)صفت- عددي صفت چې دَ دوه اتيايم او څلور اتيايم تر منځ درجه ښئي-

درې اتيايمه:(درې-اَت-يا-يهٔ-مه)اسم عدد دَ درې اتيايم مؤنث صفتي شکل-

درې اړخيز:(دَرې-اړ-خيز)صفت- مذکر- درې ګټه- درې څنډيز- درې څنګيز- درې جانبه- مثلث-

درې اويا:(دَرې-اَو-يا)اسم عدد- دَ دوه اويا او څلور اويا تر منځ عدد- ۷۳-

درې اويايم:(دَرې-اَو-يا-يَم)صفت- عددي صفت چې دَ دوه اويا او څلور اويا تر منځ درجه ښئي-

درې اويايمه:(درې-او-يا-يهٔ-مه)اسم عدد دَ درې اويايم مؤنث صفتي شکل-

درې ايکيځه:(دَرې-اي-کي-ځه)اسم- مؤنث- پنځ پوله- درې ايکيزه- پنځ پولې-

درې ايکيزه:(دَرې-اي-کي-زه)اسم- وګورئ درې ايکيځه-

درې بوجه:(دَرې-بو-جه)اسم- پهٔ يوه جرګه يا مرکه کښې دَ مشرانو شمېره دَ څهٔ وجوهاتو لهٔ کبله دَ ټاکلې شوې تعداد نه يو پهٔ درې زياتونه-

درې پړيګ:(دَرې-پهٔ-ړيګ)صفت- مذکر- منافق- ټګ- چلولې- شپږ ډېيز- درې ډېيز- درې ژبګے-

درې پښيز:(دَرې-پښه-يز)صفت- مذکر- درې پښې لرونکے- درې پښے- مؤنث درې پښيزه-

درې پلے:(دَرې-پلے)اسم- واحد- مذکر- دَ ښهيو لوبه- (افغانستان)-

زبر "(خ-بهٔ-ره)"، زورکے "(شل)"، پېښ "(نو-کا-ره)"، زبر "(ک-تاب)"، جزم "(شکون)"، "ه" (ز-ړه)، "ۀ" (ډو-بې-دهٔ)

درې پنځوس:(درې-پن-خوس)اسم عدد- درې دٌ پاسه پنځوس- ۵۳-

درې پنځوسمه:(درې-پن-خو-سهٔ-مه)اسم عدد دٌ درې پنځوسم مؤنث صفتي شکل-

درې پنځوسم:(درې-پن-خو-سم)صفت- مذکر- عددي صفت چې دٌ دوه پنځوسم او ځلور پنځوسم تر منځ درجه ښئي-

درې جړیز:(درې-جه-ړیز)صفت- مذکر- درې جړې لرونکے- درې مونړیز-

درې چنده:(درې-چن-ده)صفت- یو پهٔ درې- درې گونه- درې غبرگ-

درې څلوېښت:(درې-څل-وېښت)اسم عدد- څلوېښت او درې- ۴۳-

درې څلوېښتم:(درې-څل-وېښ-تم)صفت- مذکر- عددي صفت چې دٌ دوه څلوېښتم او ځلور څلوېښتم تر منځ درجه ښئي-

درې څلوېښتمه:(درې-څل-وېښ-تهٔ-مه)اسم عدد- دٌ درې څلوېښتم مؤنث صفتي شکل-

درې څنډے:(درې-څن-ډے)صفت- مذکر- چې درې څنډې لري- درې اړخيز-

دربدل:(دٌ-رې-دل)مصدر لازم- (۱)جګېدل- لګېدل- ولاړېدل- (۲)تمبدل- ځنډېدل- ودربدل- (۳)تعين کېدل- ټاکلے کېدل-

دربدلے:(دٌ-رې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- وګورئ دربدل-

دربدن:(دٌ-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دربدل-

دربدنګ:(دٌ-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دربدل-

دربدنه:(دٌ-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دربدل-

دربدونکے:(دٌ-رې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دربدل-

دربدهٔ:(دٌ-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دٌ ماضي استمراري دٌ واحد غائب صيغه- وګورئ دربدل-

درې دېرش:(درې-دېرش)اسم عدد- مذکر- دېرش او درې- ۳۳-

درې دېرشم:(درې-دېر-شم)صفت- مذکر- عددي صفت چې دٌ دوه دېرشم او ځلور دېرشم تر منځ درجه ښئي-

درې دېرشمه:(درې-دېر-شهٔ-مه)اسم عدد دٌ درې دېرشم مؤنث صفتي شکل-

درې ړېيز:(درې-ړه-بيز)صفت- مذکر- وګورئ درې پړيک- مؤنث درې ړېيزه-

درېړځ:(درې-ړځ)اسم- واحد- مذکر- مړز- مړخ- مراخ- کرک- نوړز- سائنسي نوم (COTURNIX)-

دربز:(دربز)امر- وګورئ درېږ-

درې ژنګے:(درې-ژن-ګے)صفت- مذکر- وګورئ درې پړيک-

درېږ:(درېږ)امر- (۱)ودرېږه- درېش- (۲)دٌ فوځيانو پهٔ قطار کښې ودرونه-

درېسکلے:(درېس-که-لے)صفت- واحد- مذکر- درې کلنے اوښ- درې ورګے-

درېش:(درېش)امر- (۱)دٌ ودرولو کلمه- وګورئ درېږ- (۲)دٌ سر او ږيرې وېښتهٔ سمونه/جوړونه- (۲)دٌ زمکې لوړه ژوره هوارونه-

درې شپېتم:(درې-شپې-تم)صفت- مذکر- عددي صفت چې دٌ دوه شپېتم او ځلور شپېتم تر منځ درجه ښئي-

درې شپېتمه:(درې-شپې-ته-مه)اسم عدد دٌ درې شپېتم صفتي شکل-

درې شپېتهٔ:(درې-شپې-تهٔ)اسم عدد- درې دٌ پاسه شپېتهٔ- ۶۳-

درېښی:(دٌ-رې-ښی)اسم- مؤنث- (۱)کرته پتلون- کوټ پتلون- وردی- (۲)هوارونه- برابرونه- جوړونه (دٌ زمکې يا ږيرې)-

درې ښېرلے:(درې-ښېر-لے)صفت- مذکر- ځلور کلنے پسهٔ- وزګړے-

درې ښاخې:(درې-ښا-خې)اسم- واحد- مؤنث- درې ښاخې- درې غاښې-

درې ښاخی:(درې-ښا-خی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دٌ رشې الوخولو، پوګ اړولو، دٌ دروزې راغنډلو او داسې نورو کارونو لهٔ پاره پکارېدونکې دٌ لرګې يا اُسپنې نه جوړه درې ښاخيزه آله- ښاخې- شانګې- درې غاښې- سکو-

درېښکے:(درېښ-کے)اسم- واحد- مذکر- دٌ منداڼو دٌ چلولو مزے- ورشکے- جلب- کېزه- ورګه- جلو- قېزه- کوزه-

درېغ:(درېغ)دٌ افسوس کلمه- (۱)انکار- (۲)آه آه- وش- ارمان- افسوس- وئ وئ- (۳)صرفه- سستي- اسره- ساتنه- سپما- (۴)دروغ-

درې غاښې:(درې-غا-ښې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ درې ښاخې-

درې غاښے:(درې-غا-ښے)صفت- واحد- مذکر- پهٔ غاښ درې- درې کلنے- درې ورګے-

درېغ من:(درېغ-من)صفت- مذکر- ناراض- ناخوش-

درېغول:(درې-غه-ول)مصدر متعدي- نهٔ ورکول- سپمول- سرپول-

درېغه:(درې-غه)دٌ تاسف کلمه- افسوس- ارمان-

درېغه درېغه:(درې-غه-درې-غه)مرکب- دٌ افسوس کلمه- ارمان ارمان- افسوس افسوس-

درې کلنے:(درې-که-له-نے)صفت- مذکر- دٌ دربو کالو- وګورئ درې غاښے-

درېکټ:(درې-کټ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم لوبه چې ځلور مربع شکل کښې کرښې ووهلے شی او دٌ اوو کسانو لهٔ خوا پهٔ دربو دربو ګيټيو کولے شی-

درېګون:(درې-ګون)عددي صفت- درې چنده- دٌ دربو ځخه جوړ-

درې ګونه:(درې-ګو-نه)صفت- وګورئ درې چنده-

درېګے:(درې-ګے)اسم- مذکر- دٌ جوارې يو قسم چې پهٔ دربو ببېږيو کولے شی-

درېم:(درېم/درېم/درېم)صفت- (۱)عددي صفت چې دٌ دوېم او ځلورم تر منځ درجه ښئي- پهٔ دوېم پسې- (۲)دٌ پير ورځ-

درېمان:(درې-مان)صفت- وګورئ درېمګړے-

درې مخے:(درې-مه-خے)صفت- مذکر- درې مخه لرونکے- درې اړخيز-

درېم کجه:(درېم-که-جه)اسم- شپږغاښے غوئے چې عمر ئې ځلور کاله وي-

درېمګړے:(درېم-ګهٔ-ړے)صفت- واحد- مذکر- منصف- ثالث- درېمان-

درې مناريز:(درې-م-نا-ريز)صفت- مذکر- چې درې منارې لري-

درېم نمبريز:(درېم-نم-به-ريز)صفت- پهٔ درېم نمبر-

دربمولن:(درې-مو-لن)اسم- جوړه- فېصله- روغه-

ي (ځي-رل)، ې (مي-ره-ول)، ۍ (پيا-لۍ)، ے (تن-دے) تفصيل دٌ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

درې مونډېز :(دَرې-مُون-ډېز)صفت- مذکر- چې درې مونډه لری- درې جړېز-

درېمه:(دَرے-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو رسم چې دَ وادهٔ خلمے دَ وادهٔ نه وروستو سره دَ څنو خپلوانو دَ سخر کور ته پهٔ مېلمستیا ځی- (۲)دَ مړی درېمه ورځ- (۳)دَ درېم مؤنث صفتی شکل-

درېمه خور :(دَرے-مه-خور)اسم- واحد- مؤنث- دَ قمری کال پنځمه میاشت- جمادی الاول-

درې نوی:(دَرې-نهٔ-وی)اسم عدد- درې دَ پاسه نوی- ۹۳-

درې نوی یم:(دَرې-نهٔ-وی-یَم)صفت- مذکر- عددی صفت چې دَ دوه نوی او څلور نوی تر منځ درجه ښئی-

درې نیم سره:(دَرې-نیم-سه-ره)اسم- څوکند چې دَ کوژدن شوې جینی رشته دارو کښې درېو سړیو او یوې ښځې ته لهٔ رشتې دَ منکرېدو پهٔ صورت کښې ورکولے شی- (افغانستان)-

درې ورکے:(دَرې-وَر-کے)صفت- مذکر- دری کلنے اوښ-

درېوزګر :(دَ-رېوز-ګر)اسم صفت- وګورئ دروېزګر-

درېوزی:(دَ-ربو-زی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دروېزی-

دری:(دَ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ سنهو، سپنسیو یا دَ پلاسټکی مزیو نه اوبدل شوې غټه شډله کپړه چې دَ ناستې او روټی خوړولو وغېره دَ پاره پکاریږی- پوړ- درئی-

درے:(دَ-رے)اسم- واحد- مذکر- پشتی- پشته- اړم-

دړ :(دَړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پارسنګ- پاسنګ- دړه- پړسنګ- پوړسنګ- پانګ- (۲)دَ تلې چابړے- (۳)دَ وزن کانړے- (۴)دَ بنیادم تنه بوده- (۵)اړت- کمېشن- دړت- دَ دړوانی پېشه- (۶)درد- دړد- (۷)غټه تله-

دړا :(دَ-ړا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ داړه-

دړاکه:(دَ-ړا-که)اسم- واحد- مؤنث- دړکه- دپکه- دبکه- دباړ-

دړت:(دړت)اسم- واحد- مذکر- جمع دړتونه- کمېشن- کټ کمېشن- سود- دړ-

دړچ دړچ:(دَړچ-دَړچ)مرکب- جیګ جیګ- ټپ ټپ- پهٔ شا ټېونه- جنګی سپاهیانو له پاړګیرنه ورکونه-

دړد :(دَړد)اسم- واحد- مذکر- دړ- درد- خوږ- څړیکه- برېښ- سوے- تکلیف-

دړدانګ:(دَړ-دانګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دړدنګ-

دړداوهٔ:(دړ-دا-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دړدول-

دړدتګ:(دَړد-تګ)اسم- واحد- مذکر- ارت ارت تلنه-

دړ دړ :(دَړ-دَړ)صفت- ذره ذره- ټوټه ټوټه- دړې دړې- (افغانستان)-

دړدړے:(دړ-ده-ړے)اسم- واحد- مذکر- پانېکو- پېکو- مغه آله چې دانې پرې مېده کولے شی-

دړد غم:(دَړد-غَم)اسم مرکب- (۱)پرېشانی- خفګان- (۲)ګړوړ-

دړدنګ:(دَړ-دنګ)صفت- (۱)پهٔ یوه منډه- سم دَ لاسه- دَ خوښۍ او خوشحالی منډه- دړی دنګ- کالکوچکه- (۲)شېبه- لحظه- (۳)پهٔ غړانګو ژړا- اوږده ژړا- (۴)ګډه وډه سندره- بې خونده سندره-

دړدوبړه:(دَړ-دوب-ړه)اسم- پهٔ شور او زوږ- پهٔ زوږ- دړدوپړه-

دړدوپړه:(دَړ-دوپ-ړه)اسم- وګورئ دړدوبړه-

دړدوړ :(دَړ-دوړ)صفت- مذکر- مات ګډ- مېده مېده- چوری چوری- ریچې ریچې-

دړدوک:(دَړد-دُوک)اسم مرکب- دوک دړد- غم دړد- تکلیف- سختے-

دړوکے:(دَ-ړو-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ پټ او امریکنی ټوپک دَ لرګی برنی ټوټه-

دړدول:(دَړ-ده-وَل)مصدر متعدی- دردول- چا ته درد رسول- تکلیف رسول- خوږول- پهٔ عذابول-

دړدولے:(دَړ-ده-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دړدول-

دړدون:(دَړ-ده-وَن)حاصل مصدر- وګورئ دړدول-

دړدونکے:(دَړ-ده-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دړدول-

دړدونګ:(دَړ-ده-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ دړدول-

دړدونه:(دَړ-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دړدول-

دړدېدل:(دَړ-دې-دَل)مصدر لازم- دردېدل- خوږېدل- تکلیف رسېدل- درد رسېدل- عذابېدل-

دړدېدلے:(دَړ-دې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دړدېدل-

دړدېدن:(دَړ-دې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ دړدېدل-

دړدېدنګ:(دَړ-دې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ دړدېدل-

دړدېدنه:(دَړ-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دړدېدل-

دړدېدونکے:(دَړ-دې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دړدېدل-

دړدېدهٔ:(دَړ-دې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دړدېدل-

دړز :(دَړز)اسم صوت- (۱)دَ ټوپک دَ ډز اواز- غړز- درز- (۲)دَ څهٔ څیز دَ پرېوتو اواز-

دړز :(دَړز)اسم- واحد- مذکر- درز- چاؤد- چاک- درځ-

دړزول:(دَړه-زه-وَل)مصدر متعدی- درزول- وهل- ټکول-

دړزولے:(دَړه-زه-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دړزول-

دړزون:(دَړه-زه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ دړزول-

دړزونکے:(دَړه-زه-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دړزول-

دړزونګ:(دَړه-زه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ دړزول-

دړزونه:(دَړه-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دړزول-

دړزوهٔ:(دَړه-زه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ دړزول-

دړزېدل:(دَړه-زې-دَل)مصدر لازم- درزېدل- وهلے کېدل- ټکولے کېدل-

دړزېدلے:(دَړه-زې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دړزېدل-

درزېدن:(دَرِه-زې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درزېدل-

درزېدنګ:(دَرِه-زې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درزېدل-

درزېدنه:(دَرِه-زې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ درزېدل-

درزېدونکے:(دَرِه-زې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درزېدل-

درزېدهٔ:(دَرِه-زې-دَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ درزېدل-

درغم:(دړ-غم)صفت- مذکر- کړوړ-

درک:(دَ-رک)اسم صوت- درزا- دَ زړهٔ درزا-

درکه:(دَ-رِه-که)اسم- واحد- مؤنث- لعنت ملامت- پهٔ خبرو تهديدونه- دبکه- دپکه- داړکه- ړب-

درکېدل:(دَرِه-کې-دَل)مصدر لازم- درزېدل- ګړېبېدل- پورته غرځېدل- زړهٔ درکېدل- ټکان يا غرځېدل-

درکېدلے:(دَرِه-کې-دَهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درکېدل-

درکېدن:(دَرِه-کې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ درکېدل-

درکېدنګ:(دَرِه-کې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ درکېدل-

درکېدنه:(دَرِه-کې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ درکېدل-

درکېدونکے:(دَرِه-کې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ درکېدل-

درکېدهٔ:(دَرِه-کې-دَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ درکېدل-

دړوانی:(دړ-وا-نی)صفت- تول کونکے- تولي- دړوی- تولګر-

دړوکی:(دَ-ړو-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ لرګی وړه ټوټه- دَ دړي اسم تصغير- (۲)دَ چلغوزي دَ ونې هغه دړه چې بلولے شي- (۳)شونټي- ايژې- يژې- چراغ چوب-

دړونے:(دَ-ړو-نے)اسم- واحد- مذکر- خرېړے- خمبه- دوړنګ-

دړوی:(دړ-وی)صفت- مذکر- وګورئ دړوانی-

دړه:(دَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ لرګی ټوټه- دَ لرګی يا هډوکی نه بېله شوې ټوټه- تخته- (۲)دَ لرګی چاړه- (۳)درز- (۴)ونه- قد و قامت- (۵)دروازه- (۶)دَ خټکی يا هندواني ترازه- جمع دړې-

دړه:(دَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ تش لوښی تلنه- وګورئ دړ-

دړه:(دَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دوړه- ګرده- ګرد- ګرده-

دړه دړه:(دَ-ړه-دَ-ړه)صفت- مرکب- ټوټه ټوټه- توټنکی توټنکی- ذره ذره-

دړه دوړه:(دَ-ړه-دو-ړه)اسم- (۱)شور ماشور- شور زوږ- غوربېر- غالمغال- غورپش- (۲)دوړه دپکه- دوړه دبکه-

دړه مار:(دَ-ړه-مار)صفت- مذکر- وګورئ داړه مار-

دړه ماری:(دَ-ړه-ما-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ داړه ماری-

دړه ماکو:(دَ-ړه-ما-کو)اسم- واحد- مذکر- يو قسم بوټے چې پهٔ فصل (زياتره پهٔ شفتلو او جوارو) کښې راشين کيږي- شمخه- سيارکه-

دړی دنګ:(دَ-ړی-دنګ)صفت- مذکر- سپک لمنے- سپک پړولے- لاندې پربوتے-

پيکه سيکه-

دړيز:(دَ-ړيز)اسم- واحد- مذکر- دَ لاندی دَ غوښې يوه غنډه او غټه ټوټه چې جُدا خوړنده وی- دَ لاندی غوټه-

دړيکه:(دَ-ړی-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اپه دپه- پرکه-

دړې:(دَ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)کړکی- کلکين- ورسی- (۲)دَ لرګی ټوټې-

دړې دړې:(دَ-ړې-دَ-ړې)صفت- مرکب- (۱)ټوټې ټوټې- پارچې پارچې- ذرې ذرې- ټکړې ټکړې- درې ورې- (۲)تس نس- ګډوډ-

دړې ورې:(دَ-ړې-و-ړې)صفت- مرکب- وګورئ دړې دړې-

دړی:(دَ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ زنانو دَ سر کالے- (۲)ځلور سېره وزن- ځلور سېره- (۳)دَ لوښو او خوراکی څيزونو دَ ايښودو الماری-

دړی ټيک:(دَ-ړی-ټيک)اسم- واحد- مذکر- دَ اوربل يا تندی يو ښځينه کالے-

دړے:(دَ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)څاڅکے- قطره- (۲)هغه لوښے چې مائع يا غوړ ورباندې اندازه کولے شي-

دزار:(دَ-زار)اسم- واحد- مذکر- جوار- جوارے- دَ جوارو غله- دَ جوارو دانې- (افغانستان)-

دزارينه:(دَ-زا-ری-نه)اسم- واحد- مؤنث- جواری- سوکړک- سوړ سکړک کېلے- دَ جوارو ډوډۍ- دَ جورو ډوډۍ-

دزړهٔ:(دز-ړهٔ)اسم- پرختيا- بوږدکی- بژدکی-

دزول:(دَ-زه-ول)مصدر متعدی- ډزول- غربول- وهل- ټکول-

دزولے:(دَ-زه-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دزول-

دزون:(دَ-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ دزول-

دزونکے:(دَ-زه-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دزول-

دزونګ:(دَ-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دزول-

دزونه:(دَ-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دزول-

دَ ژرندې پل:(دَ-ژرن-دې-پل)اسم- واحد- مذکر- پهٔ ژرنده کښې هغه پلن کاڼے چې دانې پرې مېده (اوړهٔ) کولے شي-

دَ ژواک بندګان:(دَ-ژواک-بن-دَ-ګان)اسم- جمع- دَ خدمت دَ پاره ساتل شوی بنديان- (افغانستان)-

دسپنه:(دس-په-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ اُسپنې يوه آله چې ګلکاران يُ دَ خښتو لګولو پهٔ کار کښې استعمالوی- (۲)الړی- حلقه- دَ ټوپک لېندی- دَ ټوپک کړی- (۳)څېټی- (۴)دَ زرګرانو يوه آله-

دَ سپو خرېړے:(دَ-سپو-خه-ري-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ خرېړی يو قسم چې دَ خوراک نهٔ وی-

دست:(دست)اسم- واحد- مذکر- دَ اسهال پهٔ وخت دَ عمل شمېر يا تعداد- (۲)اسهال- دَ نس ايله کېدنه- دَ نس جاری کېدنه- لهٔ نسه کښېناستنه- ريښکے- پستکے- پرپری- نری لوئ بول-

دستار:(دس-تار)اسم- واحد- مذکر- پټکے- پګړی- لونګی- بګړی- لنګوټه- لنګوټے- جمع دستارونه-

دستاربندی:(دَس-تار-بَن-دی)اسم- واحد- مؤنث- دَ دستار تړلو دستوره- یو مشر، عالم یا صوفی سړی ته دستار تړنه- جمع دستاربندۍ-

دستانه:(دَس-تا-نه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ لاس دَ یخنی لهٔ کبله اچونکے پوشاک- دَ بجلۍ ټیک کولو پهٔ وخت لاس ته اچونکے پوشاک- دستکله- دسماغو- دسکښه- لاسکله- لاس ماغږ- لاس پېټلے- جمع دستانې-

دستاویز:(دَس-تا-ویز)اسم- واحد- مذکر- (۱)دلیل- مدرک- سند- (۲)هر هغه څهٔ چې پهٔ لاس کښې وی- (۳)وسیله- بهانه- پلمه- جمع دستاویزونه-

دست بازی:(دَست-با-زی)اسم- واحد- مؤنث- لاس وهنه- ناوړه استفاده- بده استفاده- ناروا ګټه- خیانت- جمع دست بازۍ-

دست پاک:(دَست-پاک)اسم- واحد- مذکر- دسمال- دَ لاس دسمال- لاس وچونے- دَ لاس وچولو کپړه- (۲)هغه څوک چې دَ بل پهٔ ګټه استعمال شی- لاس پاکے- دَ خلقو دَ لاس اله-

دست پهٔ دست:(دست-پهٔ-دست)صفت- لاس پهٔ لاس- سمدستی- فوراً- ژر-

دستخط:(دست-خط/دس-ته-خط)اسم- واحد- مذکر- یو نښه یا نوم چې دَ لیک یا سند پهٔ اخر کښې لیکلے شی- لاس لیک- قلمی- پهٔ لاس لیکلے-

دستخطی:(دست-خه-طی)اسم- واحد- مؤنث- لاس لیک کونه- دستخط کونه- دسخطی-

دسترخان:(دَس-تر-خان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دسترخوان-

دسترخوان:(دَس-تر-خوان)اسم- واحد- مذکر- وړوه څلورکټیزه وړه یا لویه کپړه چې روټۍ پرې خوړے شی- استرخان- دسترخان- کندورے- رومال- تیکړے-

دسترس:(دست-رس)اسم- واحد- مذکر- لاس لرنه- پهٔ یو کار یا موضوع کښې لازمه پوهه لرنه- پهٔ یوه چاره کښې مهارت-

دسترک:(دست-رک)اسم- واحد- مذکر- هغه دَ لرګی جوړه آله چې ږول پرې غړولے شی- دَ ږول لوړے- دَ ږول لاړے- لوړ-

دَ سترګې ګل:(دَ-سْتر-ګې-ګل)اسم- واحد- مذکر- هغه خال (ګل) چې پهٔ سترګه کښې راوخیژی-

دست شوئ:(دَست-شوئ)اسم- واحد- مذکر- لګن- دوش- چیلمچے- دشوے- دوشوے- لاس لونے- ټورے-

دستک:(دَس-تک)اسم صوت- (۱)دَ لاس ټپ- تاړی- (۲)ور یا تمبه ټبونه-

دستک:(دس-تک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ راهداری پروانه یا پاسپورټ- (۲)دَ حساب کتاب روزنامچه- (۳)دستکے- هغه واړهٔ لرګی چې پهٔ چت کښې لګولے شی- لاړے-

دستکاری:(دست-کا-ری)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ لاس منقش څیزونو جوړونه- دَ لاس کار- کاریګری- استاذی-

دست کش:(دَست-کش)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ دستانه- (۲)لاس راکښونکے-

دستکښه:(دست-که-ښه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دستانه-

دستکول:(دست-کول)اسم- واحد- مذکر- دَ فېشن دَ څیزونو، روپو او داسې نورو شیانو دَ ساتلو دَ څرمنې یا پلاسټک څخه جوړه بټوه چې عموماً ښځې یَ ځان سره ګرځوی-

دستکی:(دَس-ته-کی)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ څاروی دَ کټې دواړو خواؤ ته لګېدلی دَ نیم میټر پهٔ اندازه واړه لرګی- (۲)پوړی کښې لګېدلی لرګی-

دستکی:(دس-ته-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم پوړی- دستکے-

دستکے:(دس-ته-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ اړکے- (۲)لاسکے- لاستے- موټے-

دستکے:(دس-ته-کے)اسم- واحد- مذکر- اوږده دَ لاس روټۍ چې پهٔ تنور پخولے شی- دَ لاس پوړی- دستکی-

دستګاه:(دست-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه ځائ چې مختلف قسمه الات پکښې جوړولے شی- کارخانه- (۲)توان- وس- قدرت- (۳)پرتم- (۴)پانګه- شتهٔ- (۵)دَ موسیقی یو بشپړ آهنګ-

دستګله:(دَست-ګه-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دستانه-

دست ګیر:(دَست-ګیر)صفت- مذکر- (۱)نیولے- ګرفتار- (۲)مرستیال- مددګار- لاس نیونکے-

دستګیری:(دست-ګی-ری)اسم- واحد- مؤنث- مرسته- امداد-

دست لاپ:(دَست-لاپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دسلاپ-

دستمال:(دَست-مال)اسم- واحد- مذکر- دسمال- رومال- جمع دسمالونه-

دستماله:(دَست-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دستانه-

دستمایه:(دَست-ما-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ډال او سپر دَ لاس نیولو ځائ او تسمه- دَ سپر او ډال موټی او پټی- دَ ډال یا دَ کنګل موټے-

دستمبول:(دَس-تم-بول)اسم- واحد- مذکر- پرپېو- پیستمبول- دَ ورکوټی خټکی پهٔ څېر یوه خوشبویه مېوه-

دستور:(دس-تُور)اسم- واحد- مذکر- (۱)رسم- رواج- (۲)قانون- قاعده- لاره- طریقه- فرمان- امر- (۳)رخصت- اجازه- (۴)هدایت- لارښودنه- جمع دستورونه-

دستورالعمل:(دَس-تُو-رُل-عه-مل)اسم- (۱)هدایت- لار ښودنه- نصیحت- (۲)مراسم- (۳)قانون- قاعده- رواج- طریقه- اصول-

دستورساز:(دَس-تُور-ساز)صفت- مذکر- دستور جوړونکے- ائین ساز-

دستورسازی:(دَس-تُور-سا-زی)اسم- واحد- مؤنث- ائین سازی- دستور جوړونه-

دستوره:(دس-تُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- دستور- طریقه- قاعده- دود- جمع دستورې-

دستوری:(دس-تو-ری)اسم- واحد- مذکر- ګټه- شکرانه-

دستوری:(دس-تو-ری)اسم صفت- پهٔ دستور پورې مربوط- دَ دستور- دَ وظیفې لهٔ مخې- دَ هدایت پهٔ اساس- رواجی-

دستونه:(دس-تُو-نه)اسم- جمع- مذکر- دَ دست جمع- وګورئ څپاره-

دَ ستونی ول:(دَ-ستو-نی-ول)اسم- واحد- مذکر- غړے- غبغب-

دسته:(دس-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لاسکے- لاستے- (۲)گلدسته- کېډۍ- بنډل- کوده- (۳)مقدار- (۴)مرسته- (۵)ډله- گروپ- ټولے- (۶)دَ سپېنسو یا رېښمو گنجی- (۷)دوه درجنه- ۲۴ کاغذونه- جمع دستې-

دسته بندی:(دس-ته-بن-دی)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ گروپ گروپ یا پلو وېشنه- پله پله کونه- گروپ بندی- صف بندی-

دستی:(دس-تی)صفت- (۱)اوس- سمدستی- سم لاسی- فوراً- ژر پهٔ ژر- سم دَ لاسه- (۲)دَ لاس-

دستی بم:(دس-تی-بم)اسم- واحد- مذکر- یو وړوکے بم چې پهٔ مخالف دَ نژدې نه ورغرزولے شی- گرنېټ-

دستی پهٔ دستی:(دس-تی-پهٔ-دس-تی)صفت- فوراً- بې ډیله- بې لهٔ ځنډه- ژر تر ژره- سم دَ لاسه- (افغانستان)-

دَ سحر سترگه:(دَ-س-حر-ستر-گه)اسم- واحد- مؤنث- هغه غټ پرقېدونکے ستورے چې دَ شپې پهٔ اخری پار کښې پهٔ اسمان ښکاری- رڼه سترگه- دَ سبا سترگه-

دسخط:(دس-خط)اسم- واحد- مذکر- وگوره دستخط-

دسخطی:(دس-خه-طی)اسم- واحد- مؤنث- وگوره دستخطی-

دسره:(دَ-سه-ره)متعلق فعل- (۱)بالکل- ښخی- قطعاً- مهو- (۲)ختم- پایَ- اخر- (افغانستان)-

دسکړه:(دس-که-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دستکړه- کړه- دَ لاس اچولو یا پهٔ مټ کولو یو کالے-

دسکښه:(دس-که-ښه)اسم- واحد- مؤنث- دست کش- لاس وېلے- پلاسټک- دسکله- لاسکله- دستانه- دسماغو-

دسکله:(دس-که-له)اسم- واحد- مؤنث- وگوره دستانه-

دسلاپ:(دس-لاپ)اسم- واحد- مذکر- بوټی- دَ سودا شروع- دَ وړومبی خرڅ پېسې- دَ دوکان دَ خلاصولو نه وروستو هغه وړومبی پېسې چې خرڅونکی يې دَ رانیونکی نه دَ جنس پهٔ مقابله کښې اخلی-

دسماغو:(دس-ما-غو)اسم- واحد- مذکر- وگوره دسکښه-

دسمال:(دس-مال)اسم- واحد- مذکر- رومال- رومیال- څپوټے- هغه ټوټه چې سر پرې تړلے شی- هغه ټوټه چې مخ لاسونه پرې وچولے شی-

دسماله:(دس-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- هغه ملهم یا پهه چې پهٔ پرهر کېښوے شی-

دسمبر:(دَ-سم-بر)اسم- واحد- مذکر- دَ نومبر او جنوری تر منځ میاشت- دَ عیسوی کال دولسمه میاشت-

دسمول:(دس-مول)اسم- واحد- مذکر- دسمال- دستمال- دوسمال- لاس پاکے- رومال- تولیه- جمع دسمولونه-

دس نمبرے:(دس-نم-به-رے)صفت- نمبر دس- بدمعاش- وران کارے-

دسون:(دَ-سون)اسم- دسوو- بالڼ- سووتی- خشاک-

دَ سوی خټکے:(دَ-سوی-خه-ټه-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم جیلغ لرونکے بوټے چې دَ گیلاس دَ دانې پهٔ اندازه دَ خټکی پهٔ شان مېوه کوی- (افغانستان)-

دسهره:(دَ-سه-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ هندوانو یوه مذهبی دستوره چې دَ اسو پهٔ لسمه نېټه کوی-

دسیسه:(دَ-سی-سه)اسم- واحد- مؤنث- لانجه- حیله- اسباب سازی- دروهه- چلوټه- پټ چل- مکر- سوړه-

دسی:(دَ-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم لوبه چې دَ زمری دَ لوبې پهٔ شان پهٔ گیټو کولے شی-

دش:(دش)اسم- واحد- مذکر- وگوره ډېش- (افغانستان)-

دشت:(دشت)اسم- واحد- مذکر- دښت- صحرا- بیدیا- دشته- مېره-

دشته:(دَش-ته)اسم- واحد- مؤنث- وگوره دشت-

دَ شکاڼه سترگه:(دَ-شکا-ڼهٔ-ستر-گه)اسم- واحد- مؤنث- دَ یو روڼ ستوری نوم چې دَ سحر سترگې نومې ستوری نه مخکښې راخیژی-

دشکه:(ده-شه-که)اسم- واحد- مؤنث- یوه اتشی اسلحه-

دشلمه:(دَش-له-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه خواږهٔ یا شیرینی چې دَ چائیو سره خوړلے شی-

دشمن:(دَش-من)اسم- واحد- مذکر- وگوره دښمن-

دشمندار:(دَش-مَن-دار)صفت- مذکر- وگوره دښمندار-

دشمنداری:(دَش-مَن-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- وگوره دښمنداری-

دشمنی:(دَش-مهٔ-نی)اسم- واحد- مؤنث- وگوره دښمنی- جمع دشمنی-

دشنام:(دَش-نام)اسم- واحد- مذکر- ښکنځل- کنځل- بدرد- زیړې- سپورې ستغې- (م- فارسی)-

دشنبه:(دَ-شم-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ گل ورځ- دوشنبه- گل- سوموار- پیر-

دشوئ:(دَ-شوئ)اسم- واحد- مذکر- چلمچی- دستشوئ- دوشے- لگن- لاس وینځونے- هغه لوښے چې لاسونه پکښې وینځلے شی-

دښت:(دښت)اسم- واحد- مذکر- وگوره دشت-

دښته:(دښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وگوره دشت-

دښکو:(دښ-کو)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې مرغی نوم- شیشړ- چوړو- بټکک-

دښمن:(دښ-من)اسم- واحد- مذکر- دشمن- مېرڅے- غلیم- بدخواه- دَښنو- خصم- دَ دوست ضد-

دښمندار:(دښ-مَن-دار)صفت- هغه څوک چې دشمنی لری- دشمن دار- توره دار-

دښمنداری:(دښ-مَن-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دشمنی- تربگنی- دښمنی-

دښمنی:(دښ-مهٔ-نی)اسم- واحد- مؤنث- دشمنی- بدی- غلیمی- رټې- عداوت- غچ- بدخواهی- کینه- ټکه- جمع دښمنی-

دښمنېدل:(دښ-مهٔ-نې-دل)مصدر لازم- مخالف کېدل- غلیم کېدل- بدېدل-

ورانېدل- رټېدل-

دښمنېدن:(دُښ-مهٔ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دښمنېدل-

دښمنېدنګ:(دُښ-مهٔ-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دښمنېدل-

دښمنېدنه:(دُښ-مهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دښمنېدل-

دښمنېدونکے:(دُښ-مهٔ-نې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دښمنېدل-

دښمنېدهٔ:(دُښ-مهٔ-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ دښمنېدل-

دښن:(دُ-ښن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دښمن-

دښنو:(دُښ-نو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دښمن-

دښنهٔ:(دښ-نهٔ)اسم- واحد- مذکر- دښمن- دشمن-

دښنه:(دُښ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دښمنی-

دښنی:(دُښ-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دښمنی-

دعا:(دُ-عا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دوا- غښتنه- حاجت غُښتنه- (۲)فاتحه- دَ مغفرت غُښتنه- پاتا- (م- عربی)-

دعا سلام:(دُ-عا-سه-لام)اسم مرکب- علېک سلېک- راشه درشه- دوستی- اشنائی- ملګرتيا- ناسته پاسته- تلهٔ راتلهٔ- ګپ شپ- (م- عربی)-

دعاګو:(دُ-عا-ګو)صفت- وګورئ دعاګوئ-

دعاګوئ:(دُ-عا-ګوئ)صفت- (۱)دعا کونکے- خېر غُښتونکے- خواست کونکے- دعاګو- (۲)زوئ، لور، نمسے، کړوسے او نور داسې نژدې خپلوان-

دعائې خېر:(دُ-عا-ئې-خېر)اسم- واحد- مؤنث- دَ خېر دعا- ښهٔ دعا- دَ يوې جرګې يا غُنډې دَ ختمېدو نه وړاندې پهٔ شريکه دُعا- دَ کار دَ شروع کولو پهٔ سر کښې دُعا-

دعوا:(دَع-وا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دعویٰ-

دعوت:(دَع-وَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)بلنه- رابلنه- راغښتنه- (۲)مېلمستيا- ولمستيا-

دعوت نامه:(دَع-وَت-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بلنې رقعه- دَ بلنې کارډ- بلن لیک-

دعوتی:(دَع-وه-تی)صفت- پهٔ دعوت راغلے- رابللے شوے-

دعوه:(دَع-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دعویٰ-

دعویٰ:(دَع-وا)اسم- واحد- مؤنث- دعوا- دعوه- داوه- لانجه- شخړه- دنګله- ونګاله- جګړه-

دعویٰ ګیر:(دَع-وا-ګیر)صفت- وګورئ دعوېدار-

دعویٰ ګیری:(دَع-وا-ګی-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دعوېداری-

دعوېدار:(دَع-وې-دار)صفت- دعویٰ لرونکے- دعویٰ کونکے- دعویٰ ګیر- دعویٰ ګر- مدعی-

دعوېداری:(دَع-وې-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دعویٰ لرنه- دعویٰ ګیری-

دغا:(دَ-غا)اسم- واحد- مؤنث- ټګی- چل- چم- دروهه- مکر- حيله- غولونه-

دغاباز:(دَ-غا-باز)صفت- دوکه باز- دوکه مار- ټګ- چلولی- درغل- فرېبی-

دغابازی:(دَ-غا-با-زی)اسم- واحد- مؤنث- دَ دغاباز کار او پېشه-

دغخے:(دَغ-خے)اسم- واحد- مذکر- وچ لاس- ګوډ لاس- دَ فالج لاس- شل لاس- معذور لاس-

دغدغه:(دَغ-ده-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وېره- ډار- ترهه- تشويش- بېره- تراره- (۲)هنګامه- انګازه- اوازه- (۳)تخنونه- تخنے- (۴)تخت- پلاز- ګدی-

دغدغے:(دَغ-ده-غے)صفت- مذکر- دوکه مار- ټګ برګ- ټګمار- ټګی کونکے- چمباز- غولونکے- فرېب ګر- فرېب کار- دغدوغے-

دغ دوپړه:(دَغ-دُوپ-ړه)صفت- وګورئ دړدوبړه-

دغدوغ:(دَغ-دَوغ)اسم- واحد- مذکر- دوکه- چل ول- اَنې بانې- فرېب-

دغدوغے:(دَغ-دو-غے)صفت- مذکر- وګورئ دغدغے-

دغدوور:(دَغ-ده-وور)اسم- واحد- مذکر- يوه څوپکه (پېکے) لرونکې مرغی- (افغانستان)-

دغډغے:(دَغ-ډه-غے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ نمر وړانګه يا شغلې- (۲)دَ غېږ څاڅکو باران-

دَ غرهٔ تماکو:(دَ-غرهٔ-ته-ما-کو)اسم- واحد- مذکر- دَ غرهٔ يو مشهور بوټے چې دَ تماکو پهٔ څېر پهٔ چيلم کښې څښلے کېږی او دَ ساه لنډی مرض دپاره مؤثر ګڼلے شی- (افغانستان)-

دَ غرهٔ چائ:(دَ-غرهٔ-چائ)اسم- واحد- مؤنث- يو مشهور خوړنکے بوټے چې دَ چائيو کار ترې اخستے شی- (افغانستان)-

دغری:(دَغ-ری)اسم- واحد- مؤنث- تمبه-

دغسې:(دَ-غه-سې)متعلق فعل- (۱)داسې- دارې- دغه رنګې- دا ډول- همدا رنګه- همدا شان- دغه شان- (۲)دَ نر پهٔ شان- دَ نر غُندې-

دغل:(دَ-غل)صفت- مذکر- درغل- کوټه- منافق- مکار- ټګ-

دغلته:(دَ-غل-ته)متعلق فعل- پهٔ دغه ځائ کښې- دغه خوا-

دغمه:(دَغ-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وهلو ټکولو پهٔ وجه جوړه شوې نښه- داغ- پاړه- پوله- تغمه-

دغو:(ده-غو)ضمير- دَ دغه جمع حالت-

دَ غوا غولانځه:(دَ-غوا-غو-لان-څه)اسم- واحد- مؤنث- دَ يو قسم وابښهٔ نوم- دَ غوا غلانځه- (افغانستان)-

دَ غوائی ژبی:(دَ-غوا-ئ-ژهٔ-بی)اسم- يو قسم طبی بوټے- ګاؤزبان- ګوزبان- چلخے- شلخے- (افغانستان)-

دَ غوائی سترګه:(دَ-غوا-ئ-ستر-ګه)اسم- (۱)ساعت- ګړی- (۲)يو قسم ګل چې شاوخوا ئې زيړه او مينځ ئې تور وی- (افغانستان)-

دغومره:(ده-غوم-ره)متعلق فعل- دغونه- دغه هومره- دومره- پهٔ دې اندازه- دومره قدرې- دونې- دونه- دومه- دغونې- دَ دغه هومره عاميانه تلفظ-

دغونه:(ده-غو-نه)متعلق فعل- وګورئ دغومره-

زبر "(غ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، "ة"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-بې-دهٔ)

دغه:(ده-غه)ضمیر- دا- دَ نژدې اشارې ضمیر لکه دغه سړے، دغه کسان-

دغه رنګې:(ده-غه-رنګ-ګې)متعلق فعل- دغسې- دغه رنګ- داسې- دغسې-

دغه مغه:(ده-غه-مه-غه)اسم مرکب- (۱)مغه دغه- (۲)ګډې وډې-

دف:(دَف)اسم- واحد- مذکر- داریا- داریال- تمبل- دریه- (م- عربی)-

دفاع:(د-فاع)اسم- واحد- مؤنث- دَ جنګ په وخت لهٔ دشمنه خان بچ کونه- ژغورنه- حفاظت- خان ساتنه- دپه- (۲)ځواب ورکونه-

دفاعی:(د-فا-عي)اسم- واحد- مؤنث- دَ دفاع متعلق- دَ دفاع-

دفاعی رفتار:(د-فا-عي-رَف-تار)اسم- هر هغه څهٔ چې یو سړے یې دَ خپل اضطراب دَ مخ نیوی دَ پاره تر سره کوی- (افغانستان)-

دفتر:(دَف-تَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه ځایْ چې پکښې سرکاری کار کولے شی- محکمه- افس- رسمی څانګه- دولتی اداره- (۲)زمکه- پلارګنے جائیداد- (۳)اوږده قیصی-

دفتردار:(دَف-تر-دار)صفت- مذکر- دَ دفتر څوکیدار- محافظ-

دفترداری:(دَف-تر-دا-ری)اسم- مؤنث- دَ دفتر چارې- دَ دفتر کارونه-

دفتری:(دف-ته-ري)صفت- مذکر- (۱)دفتر ته منسوب- (۲)دفتری لیک- دیوانی لیک- (۳)دَ دفتر سمونکے- دَ دفتر دَ سامان نګران-

دفتی:(دَف-تي)اسم- واحد- مؤنث- قایه- کانټې- دَ کتاب جلد-

دفع:(دَ-فع)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شړنه- ردونه- ایسته کونه- لرې کونه- (۲)غلی کونه- کښېنونه- قرارونه-

دفعتاً:(دَف-عه-تَن)صفت/متعلق فعل- لهٔ واره- ناڅاپه- نابېره- ناخبره- ناګهانه- فوراً- یو پهٔ یو- پهٔ یو مخ- زار دَ واره- یکدم- پهٔ یو ځل-

دفعةً:(دَف-عه-تَن)صفت/متعلق فعل- وګورئ دفعتاً-

دفعداری:(دَف-عه-دا-ری)اسم- مؤنث- دَ دفعدار کار او پېشه-

دفعه:(دَف-عه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پلا- وار- ځل- نوبت- کرت- (۲)دَ قانون یو شق- دَ قانون یوه خبره-

دفعه دار:(دَف-عه-دار)صفت- دَ دېسی فوځ یو افسر- دَ څوکیدارانو یو مشر-

دفن:(دَ-فن)اسم- ښخونه- پهٔ قبر کښې کښېنودنه- (کول/کېدل مصدرونه)-

دفنول:(دَف-نه-وَل)مصدرِ متعدی- ښخول- زمکې ته سپارل- قبر کښې کښېنودل-

دفنولے:(دَف-نه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ دفنول-

دفنون:(دَف-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ دفنول-

دفنونکے:(دَف-نه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع دفنونکی- مؤنث دفنونکې- وګورئ دفنول-

دفنونګ:(دَف-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دفنول-

دفنونه:(دَف-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دفنول-

دفنوهٔ:(دَف-نه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ دفنول-

دفنېدلے:(دَف-نې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ دفنېدل-

دفنېدن:(دَف-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ دفنېدل-

دفنېدنګ:(دَف-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ دفنېدل-

دفنېدنه:(دَف-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دفنېدل-

دفنېدونکے:(دَف-نې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ دفنېدل-

دفنېدهٔ:(دَف-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دفنېدل-

دفینه:(ده-فی-نه)اسم- واحد- مؤنث- پټه خزانه- ښخه خزانه- ښخ کړے شوے مال-

دق:(دِق)اسم- واحد- مذکر- (۱)نرے رنځ- ټي بي- دق سل- (۲- صفت)تنګ- مجبور- دلګیر- بې وسه- (۳)کمزورے- ناتوان- خوار-

دقت:(دق-قَت)اسم- مذکر- غور- توجه- خیریدنه- پام- (افغانستان)-

دقیق:(دَ-قیق)صفت- (۱)ځیر- متوجه- پام کونکے- (۲)کره- څک- حساس- منظم- نازک- مشکل- ګران- باریک-

دقیقه:(دَ-قی-قه)اسم- واحد- مؤنث- شېبه- منټ- دَ یو ساعت یو پر شپېتمه برخه-

دقیقه ګر:(دَ-قی-قه-ګر)اسم- دَ ساعت (ګړی) هغه ستن چې دقیقه معلوموی- دقیقه ګرد- (افغانستان)-

دک:(دک)ضمیر- اشاره- دکه- دغه-

دک:(دک)اسم- واحد- مذکر- (۱)فساد- اله ګوله- فتنه- خڅ- (۲)خسته- خرخسته- سودا-

دک:(دک)اسم- واحد- مذکر- (۱)علت- بهانه- (۲)حېرانتیا- (۳- صفت) اک دک- اریان- حېران-

دکا:(د-کا)اسم- واحد- مؤنث- دیکا- (افغانستان)-

د کارګهٔ ټکی:(دَ-کار-ګهٔ-ټه-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټکلی- پنډېرک- پنېرک- ټکلۍ- یو قسم بوټے چې دَ ساګ پهٔ طور پخولے او خوړے شی- پهٔ طب کښې دَ پټی دَ پاره هم پکارېږی- (افغانستان)-

د کارګهٔ ټونګه:(دَ-کار-ګهٔ-ټونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غاټول لهٔ کورنی څخه یو شین ګل چې پهٔ مېنځ کښې یې تور تخم وی- (افغانستان)-

دکازے:(دَ-کا-زے)اسم- واحد- مذکر- دَ مرزانو دَ نیولو یو قسم جال- دوګزه- دوګازه- تور-

دکان:(دَ-کان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دوکان-

دکانچه:(دَ-کان-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دنکاچه- دونکاچه- (۲)وګورئ دوکانچه-

دکاندار:(دَ-کان-دار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دوکاندار-

دکاندارتوب:(دَ-کان-دار-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دوکانداری-

دکانداری:(دَ-کان-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دوکانداری-

دکتور:(دک-تور)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ډاکټر- (افغانستان)-

دکړ:(دکړ)اسم- (۱)کوړوالے- (۲)دبکه- دکره- ټیله- (۳)ټنډوالے-

دکړه:(دک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دوکړی-

دکن:(دَ-کَن)اسم- واحد- مذکر- سوبل- سهېل-

دکه:(دَ-که)اسم- واحد- مؤنث- نغرے-

دکهی:(دک-هی)اسم- وګورئ بیستر-

دکی:(دُ-کی)اسم- واحد- مؤنث- دَ تاش پته چې پرې دوه نمبرې وی- دوکی-

دکیا کول:(دکَ-یا-که-وَل)مصدرِ متعدی- پوکل- پوکے ورکول- اور ته بنې وهل- اور بلول- تودول- اور ته په خلهٔ هوا ورکول- زیاتول- بلول- خورول- اور ته ببوزے وهل-

دکی:(د-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)یو خاورین لوښے چې غوا وغېره پکښې لوشلے شی- غوالوشه- لوغی- (۲)توده- (۲)ډیبی-

دک:(دک)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه غټ او غټ لرګے چې قصابان پرې غوښه او هډوکی ماتوی- دکے- کوړی- غټ مونډ یا تنه- (۲)هغه لرګے چې د دروازې خوا ته دَ اړم په طور لګولے شی- اړم- تماچو- (۳)دَ سپی دَ خوراک لوښے (کنډول)- (۴)دَ سرو یا سپینو زرو ګاڼه- (۵)بې وفائی- (۶)ډاک- مېره- صحرا- (۷)هغه خبره چې دَ ښکاره کولو لائقه نهٔ وی- دَ راز خبره- پټه خبره-

دک:(دک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دېک-

دګ:(دګ)اسم- په تېزه منډه- دګړ-

دک:(دک)صفت- مذکر- (۱)خرښلے سر- خرېلے سر- (۲)ګول سرے-

دکا:(دَ-کا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دکېدنه- درګار- رپا- رپېدېدنه- رپارے- (۲)وارخطائی- ناقلاری-

دګای:(دَ-ګای)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دګ-

دکدکلے:(دک-دَ-که-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو یو قسم لوبه چې په یو بل سوریږی او ټوپونه وهی-

دګړ:(ده-ګړ)اسم- وګورئ دګ- په تېزه منډه-

دکل:(دَ-کَل)مصدرِ متعدی- (۱)ترټل- غندل- رټل- (۲)منت زاری کول- منت کول-

دکل:(دَ-کل)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې په چت دَ لاړو (الهړو) لاندې اچولے شی- تیر- لاړے- (افغانستان)-

دَ کل مری:(دَ-کَل-مه-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه خټکے، بادرنګ، هندوانه وغېره چې تازه لهٔ ګله وتې وی-

دکله:(دَ-کله)اسم- واحد- مؤنث- دَ پېرې او غټې کپړې نه جوړه قباړی چې دَ قمیص دَ پاسه اغستلے کیږی- قباړی- کڼډی- واسکټیے- کوټ-

دکلی:(دَ-که-لی)اسم- منت- احسان-

دکلے:(دَ-کهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دکل-

دکن:(دَ-کَن)حاصلِ مصدر- وګورئ دکل-

دکنګ:(دَ-کَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ دکل-

دکنه:(دَ-کهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ دکل-

دکول:(دَ-که-وَل)مصدرِ متعدی- کشکول- راکښل-

دکه دکه تی:(دَ-که-دَ-که-تی)اسمِ صوت- هغه ترغیب ورکونکے اواز چې دَ جنګی پسونو دَ جنګولو په وخت دَ پسونو دَ پارولو په غرض ورکولے شی-

دکه کلے:(دَ-که-که-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دکدکلے-

دَ کیدړ وادهٔ:(دَ-کی-دړ-وا-دهٔ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ باران په دوران کښې دَ نمر ښکاره کېدنه- په شین اسمان باران ورېدنه- (۲)بوړبوړکه- دوړ دوړکه- پوړدوړانګه-

دکېدل:(دَ-کې-دَل)مصدرِ لازم- رپېدل- درګېدل- ټوپلل- تهېدل-

دکېدلے:(دَ-کې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دکېدل-

دکېدن:(دَ-کې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ دکېدل-

دکېدنګ:(دَ-کې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ دکېدل-

دکېدنه:(دَ-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ دکېدل-

دکېدونکے:(دَ-کې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دکېدل-

دکېدهٔ:(دَ-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دکېدل-

دکے:(دَ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دک-

دل:(دَل)صفت- (۱)نیم مېده- درمیانه مېده- (۲)غټ اوړهٔ- (۳)برباد- تباه- مات کړ- عبث- ضائع- بې ځایه- دل ګزاری- (۴)دلېدلے- دلېده شوے-

دل:(دَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)یوه خوراکه چې دَ غنمو مېده کړو غنمو او اُربشو نه پخولے شی- اوګره- دلده- (۲)مېده شوی شاخل چې څارویو له ورکولے شی- دَ غوا مېښو باړه کل-

دل:(دِل)اسم- واحد- مذکر- زړهٔ- ړهٔ-

دل ارام:(دِل-آ-رام)صفت- هغه څوک چې دَ زړهٔ دَ ارامېدو سبب کیږی- معشوق- محبوب- اشنا- یار-

دل ازار:(دِل-آ-زار)صفت- زړهٔ خوږونکے- تکلیف ورکونکے- زړهٔ ارازونکے- ظالم-

دل ازاری:(دِل-آ-زا-ری)اسم- واحد- مؤنث- زړهٔ ازارونه- زړهٔ خفه کونه-

دلاسا:(دَ-لا-سا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دلاسه-

دلاسائینه:(دَ-لا-سا-یئ-نه)اسم- وګورئ دلجوئی-

دلاسه:(دَ-لا-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تسلی- تسله- ډاډګیرنه- (۲ صفت)دلاسا- راضی- رضا- خوښ- قانع-

د لاسه لا:(دَ-لا-سه-لا)صفت- بدځېره پر دې- زیاتی- لا دلاسه- (افغانستان)-

دلاک:(دَل-لاک)اسم- مذکر- (۱)مالش- (۲)نائی- حجام- (۳)ډم- مطرب- (عربی)-

دلاکی:(دَل-لا-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نائیتوب- سلمانی توب- (۲)دَ ډم یا مطرب کار- (۳)دَ مالش کار-

دلال:(دَ-لال)صفت- واحد- مذکر- دَ پلورونکی او پېرونکی تر منځه جوړ راوستونکے- دَ دوو تنو په منځ کښې دَ سودا جوړونکے- بړوا- رېبار- اړتی- (عربی)-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

دلالت:(دَ-لا-لت)اسم- واحد- مذکر- (۱)برهان- دلیل- پوهونه- لارښودنه- عائد کېدنه- هدایت- (۲)رعب- عظمت- شان- (۳)دَ دلال کسب او کار- رېباری-

دلال گر:(دَ-لال-گر)اسمِ صفت- دلالی کونکے- وړل راوړل کونکے- رېبار- مؤنث دلال گره-

دلالی:(دَ-لا-لی)اسم- واحد- مؤنث- دَ دلال کار- دَ دلال وظیفه یا شغل- دلالت- دړت-

دلاور:(د-لا-وَر)صفت- مذکر- زړهٔ ور- بهادر- پهٔ زړهٔ ببر- شجاع- مېړهٔ- سرتېرے- زمرے-

دلاورتوب:(د-لا-وَر-توب)اسم- واحد- مذکر- وُگورئ دلاوری-

دلاورتیا:(د-لا-وَر-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وُگورئ دلاوری-

دلاوری:(د-لا-وَ-ری)اسم- واحد- مؤنث- زړهٔ ورتوب- زړهٔ ورتیا- تکړه والے- دلاورتوب- دلاورتیا-

دلبار:(دل-بار)اسم- واحد- مذکر- دَ دربار عامیانه تلفظ- دربار-

دلباری:(دل-با-ري)اسم- واحد- مذکر- وُگورئ درباری-

دل برداشته:(دل-بر-داش-ته)صفت- چې زړهٔ ئې بد شوے وی- خفه- زړهٔ موړے- غمگین-

دلبری:(دل-به-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زړهٔ راکښنه- محبوبیت- معشوقیت- زړهٔ وړنه- (۲)ناز- ادا- خرام- عشوه- نخره-

دلبستگی:(دل-بس-ته-گي)اسم- واحد- مؤنث- زړهٔ تړنه- علاقه- رابطه- (۲)محبت- مینه-

دلبسته:(دل-بس-ته)صفت- زړهٔ تړونکے- علاقه مند-

دلبند:(دل-بَند)صفت- مذکر- (۱)پهٔ زړهٔ پورې- زړهٔ پورې- دَ سترگو تور- دَ زړهٔ ټوټه- معشوق- محبوب- (۲)لرمون-

دلبه:(دَل-به)اسم- واحد- مؤنث- هغه غوښه یا مرغۍ چې ښکاری مارغان پرې نیوے شی- طعمه-

دل پسند:(دل-په-سند)صفت- مذکر- زړهٔ ته نژدې- خوښ- خوږ-

دلپل:(دَل-پل)صفت- مذکر- چملوک- چختاړ- چختاڼ- چخپیت- چیت پیت- چت پت-

دلتا:(دل-تا)اسم- مؤنث- (۱)وُگورئ ډېلټا- (۲)دَ یونانی ژبې دَ "الف، ب" دَ پټی خلورم توری چې دَ مثلث پهٔ شکل وی-

دل تنگ:(دل-تنگ)صفت- مذکر- زړهٔ تنگے- غمگین- خوابدے- زړهٔ نیولے- خفه- دق-

دلته:(دَل-ته)ضمیر/متعلق فعل- دلې- دېلې- دلې ته- دې ځایْ ته- دې خوا ته-

دلته اورته:(دل-ته-اور-ته)ضمیر- ښخوا اخوا- خوا و شا- یو پلو بل پلو- ایسته اورته- دې غاړه هغه غاړه- یو طرف بل طرف-

دلجمعی:(دل-جم-عی)اسم- مؤنث- اطمینان- تسله- تسکین-

دلجوئی:(دل-جو-ئي)اسم- مؤنث- شفقت- پاڼگیرنه- مهربانی- تسلی- دلاسائنه- دلاسه-

دلچسپ:(دل-چسپ)صفت- مذکر- پهٔ زړهٔ پورې- پهٔ طبع برابر- زړهٔ نښلونکے- ښکلے- دَ مزې- ښائسته-

دلچسپی:(دل-چس-پي)اسم- مؤنث- دَ زړهٔ کېدنه- شوق- خوښی- پهٔ زړه پورې توب- علاقه لرنه- خوند-

دلخواه:(دل-خَواه)صفت- زړهٔ غښتونکے- مطلوب- منلے- خپله خوښه- دَ خوښې مطابق- څنگه چې زړهٔ غواړی- خوښې-

دلداده:(دل-دا-ده)صفت- مذکر- مئین- عاشق- زړهٔ بائېللے-

دلدار:(دل-دار)صفت- مذکر- محبوب- معشوق- گران- خوږ- عزیز- زړهٔ ساتونکے- تسله ورکونکے-

دلداری:(دل-دا-ري)اسم- مؤنث- پاڼگیرنه- تسلی- دلاسائی- زړهٔ ساتنه-

دلدل:(دل-دل)اسم- واحد- مذکر- بوخته مرغه- جبه زار- چړچوبنه زمکه- چیقړې- خټې-

دلدل:(دَل-دَل)اسم- واحد- مذکر- هغه سپین قچر چې دَ اسکندریې حاکم مقوقش رسولِ کریم صلی الله علیه وسلم ته دَ نذرانې پهٔ طور اُستولے وو او حضور صلی الله علیه وسلم حضرت علی علیه السلام ته ورکړے وو- (عربی)-

دلده:(دل-ده)اسم- واحد- مؤنث- گور- اوگره- ورغستلی- دل- یو قسم خوراک-

دلربا:(دل-رُ-با)صفت- مونث- زړهٔ وړونکې- معشوقه-

دلربائی:(دل-رُ-با-ئي)اسم- مؤنث- (۱)معشوق توب- دلبری- (۲)دَ سریندې او سارنگی غندې دَ موسیقی یوه آله-

دلسرد:(دل-سرد)صفت- مذکر- نااُمېده- مایوسه- زړهٔ تورے- زړهٔ ماتے- سوړ زړے- دَ دل گرم مند-

دلسوز:(دل-سوز)صفت- مذکر- زړهٔ سواندے- مهربان- مشفق- هغه څوک چې پهٔ غریبانو، بې وسو او مظلومانو ئې زړهٔ خوږېږی-

دلسوزی:(دل-سو-زی)اسم- مؤنث- زړهٔ سواندی- مهربانی- شفقت-

دلغرېبی:(دل-فه-رے-بی)اسم- مؤنث- (۱)دَ زړهٔ وړنه- زړهٔ غولونه- زړهٔ دوکه کونه- (۲)ښائست- ښکلا-

دلفین:(دل-فین)اسم- مذکر- ډولفین- ډالفن-

دلق:(دلق)اسم- گودړی- کند- دَ دروېشانو جامې- (عربی)-

دلکش:(دل-کش)صفت- زړهٔ راکښونکے- زړهٔ وړونکے- ښکلے-

دلکی:(دَل-کي)اسم- مؤنث- نرم او مهین رفتار- دَ هوار تگ-

دلکی:(دل-کی)اسم- دَ دل اسم تصغیر-

دلگیر:(دل-گیر)صفت- مذکر- خفه- زهیر- بې چرته- خوابدے- غمگین- غمژن- زړهٔ نیولے- زمول- بړوس-

دلکی:(دل-کی)اسم- مؤنث- وُگورئ خانخولی-

ئ" (خی-زل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لي)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وُگورئ تشریحات صفحه ۰۱

دلګے:(دل-ګے)اسم- وګورئ پلګی-

دلګے مشر:(دل-ګے-مهٔ-شر)صفت- مذکر- وګورئ پلګی مشر-

دلل:(دَ-لَل)اسم- (۱)سترتیا- زله توب- (۲)خواری- نیستی-

د لمر سترګه:(دَ-لمر-ستر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- نمر- لمر-

دلمل:(دل-مل)اسم- شرمته- شین غټه-

د لم وچه:(دَ-لم-وَ-چه)اسم- وچه- دَ کبډ دَ لم پیښانې- دَ لم وازګه- دَ وچ کړی لم یو پوټے- وچه ټوټه-

دلن:(دَ-لن)اسم- مذکر- دلدل- بوخته-

دلنشین:(دل-نه-شین)صفت- مذکر- پهٔ زړهٔ کښې کښېناستونکے- پهٔ زړهٔ اثر کونکے- زړهٔ کښې-

دلنواز:(دل-نه-واز)صفت- مذکر- زړهٔ نمانځونکے- زړهٔ خوشحالونکے- یار- ملګرے- مئین-

دلنے:(دَ-له-نے)اسم- مذکر- لواړه دلده چې مېده اوړهٔ ترې نه بېل کړے شوی وی- بوره-

دلو:(دَ-لو)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سلواغه- بوقه- پولچه- دلوه- سطل- (۲)دَ لمریز (هجری شمسی) کال یوولسمه میاشت چې ۳۰ ورځې لری-

دلول:(دَ-له-وَل)مصدر متعدی- (۱)ټکول- کوټل- خوبل- غټ اوړهٔ کول- دل کول- مېده کول- ګودی کول- دلده کول- (۲)پرتې وتېل- ناشودی کول- چټیات یا نامناسبې خبرې کول- (۲)تباه کول-

دلولے:(دَ-له-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دلول-

دلون:(دَ-لون)اسم- سیارکه- شمخه- یو قسم وابښهٔ چې پهٔ شولو او غنمو جوارو کښې کیږی-

دلون:(دَ-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ دلول-

دلونکے:(دَ-له-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دلول-

دلونګ:(دَ-له-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ دلول-

دلونه:(دَ-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دلول-

دلوه:(دل-وه)اسم- مؤنث- وګورئ بوقه-

دله:(دَ-له)صفت- بړوه- درروس- دوس- بې غېرته- بې شرمه- دوېز-

دله توب:(دَ-له-توب)اسم- مذکر- بې غېرتي- دووسی- دله ګی- دله ګیری- دله والے- دووس توب- دوسی-

دله خپک:(دَ-له-خه-پک)اسم- واحد- مذکر- دَ پیشو پهٔ شان یو ځناور چې دَ ځرمن حاصلولو دَ پاره ئې ښکار کولے شی- دله ګک-

دله ګک:(دَ-له-ګک)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ دله خپک- (۲)دَ مرئ بلغم-

دله ګیری:(دَ-له-ګی-ری)اسم- وګورئ دله توب-

دلیا:(دَ-لیا)اسم- وګورئ اګرا- دل- اوګره-

دلیاچ:(دل-یاچ)اسم- دَ مکان دَ بهر چاردېواری-

دلیل:(دَ-لیل)اسم- واحد- مذکر- (۱)ثبوت- برهان- حجت- (۲)ښېرونکے- (۳)لار ښودونکے- (۴)پهٔ یادونکے- (۵)زېرے کونکے- (۶)نښه- علامه-

دلیلی:(دَ-لی-لی)صفت- دَ دلیل- دَ برهان- دَ حجت- پهٔ دلیل برابر- پهٔ دلیل مربوط- (۲)یقینی- مقنع- ثابت- دَ دلیل وړ-

دلیه:(دَ-لیه)اسم- مؤنث- اتوب- اګره- اوګره- دلیا-

دلې:(دَ-لې)ضمیر/متعلق فعل- دلته- دلته کښې- دا ځائې- پهٔ دې ځائې- دې خوا- دېلې- دلې ته-

دلې ته:(دَ-لې-ته)ضمیر/متعلق فعل- وګورئ دلې-

دلېځ:(دَ-لېځ)اسم- لونده غله- ذکمینه غله- زیمناکه غله- نوژنه غله-

دلېدل:(دَ-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)دل کېدل- دلده کېدل- اوګره کېدل- مېده کېدل- ګوری کېدل- غټ اوړهٔ کېدل- دل ګزاری کېدل- (۲)تباه کېدل- (۳)پهٔ عشق کښې سختې تېرول- (۳)دَ دوران ناکردې تېرول-

دلېدلے:(دَ-لې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دلېدل-

دلېدن:(دَ-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ دلېدل-

دلېدنګ:(دَ-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ دلېدل-

دلېدنه:(دَ-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دلېدل-

دلېدونکے:(دَ-لې-دُون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دلېدل-

دلېدهٔ:(دَ-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دلېدل-

دلېر:(دَ-لېر)صفت- واحد- مذکر- بهادر- تکړه- تورزن-

دلېری:(دَ-لے-ری)اسم- مؤنث- بهادری- زړهٔ ورتیا-

دلېکه:(دَ-لې-که)اسم- مؤنث- ډکره- شاړه زمکه- پوګرے- پوګره زمکه- ډاګرے-

د لېوهٔ اور:(دَ-لې-وهٔ-اور)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے-

دلې دورې:(دَ-لې-دَو-رې)مرکب- (۱)ارخه برخه- (۲)دلته هلته- هورته ایسته- (۳)معمولی- (۴)انې بانې-

دلی:(دَ-لی)صفت- واحد/جمع- مؤنث- (۱)زښت- زیات- بې اندازې- پربمانه- (۲- اسم)کوټه- امبار- ډېرے- (۳)دَ غلې ډېرے- درمن- (۴)رامبورے- (۴)پلانه-

دلی دلی:(دَ-لی-دَ-لی)صفت- مرکب- انبار انبار- ډېرې ډېرې-

دم:(دم)صفت- (۱)غلے- خاموش- چپ- (۲- اسم)کبر- غرور- ناز- (۳)لو- (۴)اخری-

دم:(دم)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوف- چُف- دم درماء- اوده- (۲)لحظه- شېبه- ساعت- وخت- (۳)ژوند- روح- ځان- (۴)ساه- نفس- ذات- (۵)دَ چیلم کش- دَ چرسو دَ چیلم کش- (۶)افسون- جادو- منتر- (۷)زور- طاقت- توان- (۸)همت- حوصله- (۹)مینه- (۱۰)قرار- دمه- ټکور- (۱۱)براس- (۱۲)دَ پخکړې خوراکَ دَ زیات خونده ورکولو دَ پاره پهٔ سرپوښ لوښی کښې دَ سکروټو دَ پاسه دَ لږ وخت دَ پاره ایښودنه-

دما:(دَ-ما)اسم- تاوتیک-

دما:(دَ-ما)ضمیر- زما-

دما:(دَ-ما)اسم صوت- دمهار- درمهار- دَ توپو دَ ډزو پرله پسې اوازونه-

دمادم:(دَ-ما-دم)صفت/متعلق فعل- پرله پسې- پهٔ يو مخ- دم پهٔ دم-

دمار:(دم-مار)اسم- واحد- مذکر- دَ ۱۴ ميترو څخه جوړ يو تال- دهمار-

د مار ژبی:(دَ-مار-ژه-بی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- يو قسم بوټے چې دَ سر نه تر بېخه پورې پاڼې لری-

دماغ:(د-ماغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مازغهٔ- مغز- دَ سر مازغهٔ- (۲)لوئی- کبر- غرور- تکبر- (۳)هوش-

دماغجن:(د-ماغ-جن)صفت- وګورئ دماغژن-

دماغژن:(د-ماغ-ژن)صفت- واحد- مذکر- (۱)مغرور- کبرژن- متکبر- دماغی- نېشه- اېمار- (۲)پوه- عقلمند- پوی-

دماغکے:(د-ماغ-کے)اسم تصغير- دَ دماغ دَ شا پهٔ ښکته خوا کښې دَ يوې دماغی برخې نوم چې دَ دماغو نه ېېر ووړوکے وی-

دماغه:(د-ما-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پوزې پهٔ څېر وتلے خايْ- ورسک- (۲)دَ کښتي وتلے خايْ- (۳)دَ زمکې هغه کم عرض وتلې برخه چې پهٔ اُبو (بحر) کښې وړاندې تلې وی-

دماغی:(د-ما-غی)صفت- (۱)وګورئ دماغژن- (۲)روحی- (۳)دَ دماغ- پهٔ دماغ مربوط-

دماګوړی:(د-ما-ګو-ړی)اسم- ډيماګوړی-

دمامه:(د-ما-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نغاره- نوبت- ډمامه- ډنډوره- (۲)فضا- (۳)دَ خاورو لوئ خېټ- (۴- صفت) شان شوکت- رونق-

دمبال:(دم-بال)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ دمباله- (۲)غول-

دمباله:(دم-با-له)اسم- واحد- مؤنث- اخيری سر- لکی- کوناټے- شا- (۲)دَ وږو ماشومانو دَ څيزونو سمبال ساتلو ووړکے خورجين- دمبولا- دمبيله-

دمبله:(دمب-له)اسم- واحد- مؤنث- شلته-

دمبوره:(دم-بو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تمبوره-

دمبوری:(دَم-بُو-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ غنمو يا نورو دانو ډېرے-

دمبوسه:(دم-بو-سه)صفت- واحد- مذکر/مؤنث- غټ پټ او مضبوط- چوبر- سنډا-

دمبول:(دم-به-وَل)مصدر متعدی- خوخول- حرکت ورکول- ښورول-

دمبولا:(دم-بو-لا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دمباله-

دمبولے:(دَم-به-وهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دمبول-

دمبون:(دَم-به-وَن)حاصل مصدر- وګورئ دمبول-

دمبونکے:(دَم-به-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دمبول-

دمبونګ:(دَم-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دمبول-

دمبونه:(دَم-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دمبول-

دمبوهٔ:(دَم-به-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ دمبول-

دمبيله:(دَم-بې-له)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوه نليز ټوپک- دوه نلی- دَ څرنيز ټوپک پهٔ شان ټوپک چې دوه نلې لری-

دم پخت:(دم-پخت)صفت- دم پق- پهٔ دم پوخ شوے- پهٔ بړاس يا بخار پوخ شوے- دم پوخ- دمی-

دم پخود:(دم-پهٔ-خود)صفت- (۱)خاموش- غلے- چپ- ساکت- ساه راکښلے- پوزه راکښلے- ساوتے- حېران- (۲)دَ زړهٔ لېوالتيا ورکېدنه- دَ زړهٔ زولکی غوڅېدنه- پهٔ هوش کښې راتلنه-

دم پوخ:(دم-پوخ)صفت- وګورئ دم پخت-

دم پهٔ خود:(دَم-پهٔ-خود)صفت- وګورئ دم پخود-

دم پهٔ دستی:(دم-پهٔ-دس-تی)صفت- فوری- فی الحال- ژر تر ژره-

دم پهٔ دم:(دم-پهٔ-دم)صفت/متعلق فعل- (۱)شېبه پهٔ شېبه- ساعت پهٔ ساعت- لحظه پهٔ لحظه- ګړی پهٔ ګړی- (۲)پرله پسې- مسلسل- بې وقفې-

دم تر دمه:(دم-تر-ده-مه)صفت- ساعت پهٔ ساعت- ګړی پهٔ ګړی-

دمتوره:(دم-تو-ره)اسم- واحد- مؤنث- باتوره- بربک- تاتوره-

د مټ شېطان:(دَ-مټ-شې-طان)اسم- واحد- مذکر- دَ خاورو شېطان- دَ شګې شېطان- کولولو- يو قسم چينجے چې دَ خاورو لاندې پائی- شېطانکه- شېطان خټ- شېطان خوټ-

دَ مچو ډمبکی:(دَ-مه-چو-ډم-به-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټت بکه- دَ مچو کک-

دمچی:(دم-چی)اسم- واحد- مؤنث- هغه پټی چې دَ اس دَ لکی لاندې تېره شوې وی او دواړه سرونه ئې زين سره نښتی وی-

د مخنے:(دَ-مه-خه-نے)صفت- مذکر- لرغونے- پخوانے- وړاندينے- مخکينے- مخنے- وړومبنے-

د مخه:(دَ-مه-خه)صفت- (۱)مخکښې- وړاندې- وړومبنے- (۲)پهٔ وس- پهٔ طاقت- پهٔ توان- پهٔ واک- پهٔ قدرت-

د مخه توب:(دَ-مه-خه-توب)اسم- وګورئ د مخه والے-

د مخه والے:(دَ-مه-خه-وا-لے)اسم- دَ مخه توب- مخکښې والے- وړاندې توب- وړومبوالے- څنډن توب- سابقه توب- سابقه والے- پخواوالے-

دمدار:(دم-دار)صفت- مذکر- (۱)پهٔ قرار- پهٔ دمه- پهٔ حوصله- (۲)ذی روح- ساکښ- (۳)دم لرونکے- کشېدونکے- غنځېدونکے- (۴)نرم- پوست- (۵)مضبوط- ټکره- پائېدار-

دم دارحال:(دم-دار-حال)صفت/متعلق فعل- پهٔ ټکی- وګورئ دم درحال-

دم درپه:(دم-دَر-په)صفت- تقویٰ دار- پرهېزګار- بزرګ-

دم درحال:(دم-دَر-حال)صفت/متعلق فعل- پهٔ ټکی- پهٔ هغه وخت- پهٔ موقع- سمدستی- سم ملاسه- فوراً- دستی- دم دارحال- دم درحاله- فوری- فی الحال- سم دَ لاسه- همدا اوس- اوس-

دم درحاله:(دم-دَر-حا-له)صفت/متعلق فعل- وګورئ دم درحال-

دم درود:(دم-دَ-رود)اسم- مذکر- دم درهه- دم تعويذ- ټوټه- ټونه- ټونه ټوټکه- دم چُف- کوډې تعويذ- تاڼې ټونې- سحر جادو- ښتونه تعويذونه- (۲)تقویٰ داری- زرد وظيفه-

دم دره:(دم-ده-ره)اسم- واحد- مؤنث وګورئ دمدړه-

دم درهه:(دم-در-هه)اسم- وګورئ دم درود-

دمدړه:(دم-ده-ړه)اسم- واحد- مؤنث- هغه آله چي دَ ټوکر یا بل شی دَ اُبدلو په وخت دَ تنستي تارونه ښکته پورته کوی- خنګرے- دمدره-

دم دعا:(دم-دَ-عا)اسم- دم درود- دعا-

دم دلاسا:(دم-دَ-لا-سا)اسمِ مرکبْ- دلاسه- خوشحالونه- تسلی- ډاګیرنه- لاس راکښنه-

دم دلاسه:(دم- دَ-لا-سه)اسم- دم- جیګی جیګی- مری مری-

دمدم:(دَم-دَم)اسمِ صوت- وګورئ دُپ-

دمدمال:(دم-ده-مال)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ زنانوُ دَ غاښونو صفا کولو او شونډو سرهٔ کولو یو قسم پوډر- (۲)دنداسه-

دمدمه:(دم-ده-مه)اسم- واحد- مؤنث- برج- مورچه- وړه قلعه یا پېکټ-

دمدمه:(دم-ده-مه)اسم- بډائی- فخر- کبر- غرور- لوئی-

دمدمه:(دم-ده-مه)اسم- واحد- مؤنث- دلی- ډېرے- ټوپی- کوټه- انبار- سر پهٔ سر ایښودنه-

دمرده:(دم-ره-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ ژرندې اړم/اړمے- دَ ژرندې دَ تلې اوږد لرګے-

د مرغی کنہے:(دَ-مر-غی-که-نہے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم وابښهٔ چي پهٔ شوتلو (شفتلو) او رشقو باندې راتاوېږی او ترې ترقی نهٔ شی کولے-

دمړی:(دم-ړی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دینار- (۲)وګورئ دمړی-

دمړی:(دم-ړی)اسم- واحد- مذکر- سوټے- لوړ- ډانګ- کوتک-

دمړی:(دم-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ پېسې څلورمه حصه- دمړے- دملی- (۲)دوه پایانې- (۲)پخوانی نیمه ادېله- (۴- صفت)کم شے- لږ څیز-

دمساز:(دم-ساز)صفت- مذکر- ساه سره ساه برابرونکے- ډېر خوږ ملګرے- همراز- همدم- خوږ ملګرے-

دمسه:(دم-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لوئ او غټ ډولکے- (۲- صفت)غټ سړے یا ښځه- جمع دمسې-

دم قدم:(دم-قه-دم)صفت- مذکر- ساه او قدم- خپل ځان- وجود- ذات-

دمک:(دَ-مک)اسم- واحد- مذکر- شېبه- لحظه- لږ وخت- آن- (۲)دمه- ارام- سیاله- (۳)درمټ- تپک- (۴)دَ دم اسمِ تصغیر-

دم کوتاهی:(دم-کو-تا-هی)اسم- وګورئ ارخښ-

دم کوتیا:(دم-کو-تیا)اسم- وګورئ ارخښ-

دمکر:(دم-کړ)صفت- مذکر- (۱)اوده کونکے- دَ اودې خاوند- دمکړے- دم کونکے- دم اچونکے- (۲)هغه څوک چي دَ پش بنی وهی- مؤنث دمکره-

دمکړے:(دم-کهٔ-ړے)صفت- وګورئ دمکر-

دمګی:(دَ-مه-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چندرو- چفی- چونګړت- چیتی- موڅی- جزبازی- دَ ماشومانو یو قسم لوبه-

دمل:(دَ-مل)اسم- واحد- مذکر- یو قسم دانه چي پهٔ وجود راخیژی- سنجه- سنجکی- سینجکی- شنخې- ښنخه- شنجکی-ښنخې- شینځکی- دنبل- دمبله- دمبل- شنجه- شلنه-

دمل:(دَ-مل)مصدر- وګورئ دمول-

دملی:(دم-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ دمړی-

دملے:(دم-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دمل-

دمو:(دَ-مو)اسم- واحد- مذکر- دَ دوؤ سیندونو دَ یو ځایْ کېدو ځایْ- هغه ځایْ چي دوه سیندونه یا دریابونه سره ګډېږی-

دموکراسی:(دَ-مو-کرا-سی)اسم- واحد- مؤنث- ډیموکراسی- جمهوریت- عوامی حکومت- (افغانستان)-

دمول:(دَ-مه-ول)مصدرِ متعدی- (۱)اوده کول- چف کول- دم کول- دم اچول- دَ ناروغی دمل- دَ اودې لاندې راوستل- (۲)دَ پخکړی څیز دَ زیات خوندور کولو دَ پاره پهٔ سرپوښ لوښی کښې دَ سکروټو دَ پاسه دَ لږ وخت دَ پاره ایښودل-

دمون:(دَ-مه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ دمول-

دمونکے:(دَ-مه-وون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دمول-

دمونګ:(دَ-مه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ دمول-

دمونه:(دَ-مه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ دمول-

دموهٔ:(دَ-مه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ دمول-

دموی:(دَ-مه-وی)صفت- دَ وینې- وینې ته منسوب- (عربی)-

دمه:(ده-مه)صفت- (۱)پهٔ سیاله کښې- آسوده- دَ ستړے ضد- (۲- اسمِ مؤنث)ارام- ساه اخستنه- سیاله- لنډ استراحت-

دمه:(دهٔ-مه)اسم- اروے بدېدنه- بدهضمی- هاضمه خرابېدنه- خېټه خرابېدنه- اغېړ-

دمه:(دَ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ساه لنډے- (۲)بخار- لړه- (۳)ساه- نفس-

دمه پهٔ دمه:(دَ-مه-پهٔ-دَ-مه)صفت- مرکب- وار پهٔ وار- پهٔ نمبر نمبر-

دمه ځایْ:(دَ-مه-ځایْ)اسم- واحد- مذکر- دَ دمې کولو ځایْ- دَ استراحت ځایْ-

دمه ګیر:(دَ-مه-ګیر)صفت- (۱)دمه کونکے- سیاله کونکے- (۲)دمه شوے- تازه دم- خوشحاله-

دمه لوئ:(دَ-مه-لوئ)صفت- مذکر- (۱)ارام غښتونکے- (۲) - دمه- ارام-

دمهار:(دم-هار)اسمِ صوت- غرمبار- غرومبهار- دروبهار- دَ توپو وغېره دَ ډزو پرله پسې اوازونه-

دمهوری:(دم-هو-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ قصابانو کوړی-

دمی:(دَ-می)صفت- مذکر- (۱)دَ دمې مریض- (۲)دمه کونکے-

دمیژ:(دَ-میژ)ضمیر- زمونږ- زموژ-

دَ میږی دَ لېوهٔ سترګه:(دَ-می-ږی-دَ-لې-وهٔ-ستر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- یو وړوکے او بل غټ دوه ستوری چي دَ قطب ستوری ته نژدې وی-

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(زَ-ړه)، "هٔ"(ډو-ډې-دهٔ)

دمېدل:(دَ-مې-دل)مصدرِ لازم- (۱)ارامېدل- مستریح کېدل- (۲)چُپېدل- چُپ کېدل- غلی کېدل- (۳)دم کېدل- دَ دم لاندې راتلل/کېدل- (۴)دم خوړل- پخېدل-

دمېدن:(دَ-مې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ دمېدل-

دمېدنګ:(دَ-مې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ دمېدل-

دمېدنه:(دَ-مې-دهَ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ دمېدل-

دمېدونکے:(دَ-مې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دمېدل-

دمېدهٔ:(دَ-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ دمېدل-

دَ مېلمانهٔ سترګه:(دَ-مېل-ما-نهٔ-ستَر-ګه)اسم- دَ نماښام ستورے- دَ نماښام سترګه- زهره-

دمے:(دَ-مے)اسم- ساړهٔ- یخنی- زکام- نزله-

دن:(دن)اسم- واحد- مذکر- (۱)مټ- متی- خُم- ماټې- چاټې- غټ خاورین لوښے چې اُبهٔ وغېره پکښې ساتلے شی- (۲- اسم صوت)دَ ټوپک یا توپې آواز-

دناسری:(دَ-نا-سَ-ری)اسم- یو قسم راګ چې دَ سحر پهٔ وخت وئیلے شی-

د نامهٔ غوټه:(دَ-نا-مهٔ-غو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دَ نامهٔ کنډه- دَ نامهٔ غوټې- دَ نوم سر- دَ نامهٔ سر-

دَ نامهٔ غوټې:(دَ-نا-مهٔ-غو-ټې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دَ نامهٔ غوټه-

دنانیر:(د-نا-نیر)اسم- جمع- دَ دینار جمع- دینارونه-

دناو:(دَ-ناو)اسم- هغه اُبهٔ چې غنمو ته پهٔ اخر وخت کښې ورکولے شی او دَ غنمو دانه پرې کلکیږی-

دناوے:(دَ-نا-وے)اسم- واحد- مذکر- پړونے-

دنبال:(دم-بال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دمبال-

دنبالال:(دَم-با-لال)اسم- مذکر- دَ ګېډې خوټې-

دنباله:(دم-با-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دمباله-

دنبوره:(دم-بو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تمبوره-

دنبوسه:(دم-بو-سه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- غټ پټ- چونډا مونډا- هغه څوک چې دَ اندازې نه زیات غټ وی- غټ او چاق- بې جوړه او بې کوکه-

دنبه:(دَم-به)اسم- واحد- مذکر- لم ور ګډ- دمبه- (فارسی)-

دنبی:(دم-بی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- چغی- چیتی- موځی- چیندرو- جانتو- چارخط- دَ ماشومانو یو قسم لوبه-

دنچک:(دن-چک)صفت- نیمچه- نیم ګړ-

دند:(دَند)اسم- واحد- مذکر- هغه بړاس چې دَ سیندونو نه یا دَ ډېر باران پهٔ سبب دَ زمکې نه پورته کیږی- دوند- لړه- دوړه-

دندارسه:(دن-دار-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دنداسه-

دندارو:(دَن-دا-رو)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم دانه چې دَ ماشومانو پهٔ سر باندې راخیژی- (۲)غنهارے- خنزه-

دنداسه:(دن-دا-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غوز دَ ونې پوټکے چې دَ غاښونو صفا کولو او شونډو سرو کولو دَ پاره پکارولے شی- دندارسه- دنداهه-

دندان:(دن-دان)اسم- جمع- مذکر- غاښونه-

دندان ساز:(دن-دان-ساز)صفت- مذکر- مصنوعی غاښونه جوړونکے-

دندان سازی:(دن-دان-سا-زی)اسم- مؤنث- دَ مصنوعی غاښونو جوړولو کار-

دندانه دار:(دَن-دا-نه-دار)صفت- مذکر- دندانه لرونکے- غاښې لرونکے- دندانې پورې تړلے- دندانې سره مربوط-

دنداهه:(دن-دا-هه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دنداسه-

دندکنړ:(دند-کنړ)اسم- واحد- مذکر- دَ هاتی هډوکے- دَ هاتی هډ-

دندوړه:(دن-دو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- نیننې شوی جینجر- خاکشیر- خاشکیر- پشولمے-

دندوکار:(دن-دو-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)تیارهٔ- تورتم- تاریکه- (۲)شور زوږ- فساد- بدانتظامی- غوبل- (۳)الوکے- لوخړې- لړې دوړې- (۴)ډېر تعداد-

دندوکار:(دن-دو-کار)اسم- دَ بربېښ، تندر او ګړګوړ اواز- دَ توپو وغېره ګړ ړزار- ټس- درب- دربهار- ټک- (۲)دَ اور دَ لمغړو، لوګو او غرغنډو زیات والے-

دنده:(دن-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پېش خانه- پېش خېمه- (۲)زمرے-

دنده:(دن-ده)اسم- واحد- مؤنث- شغل- وظیفه- هنر- کار کسب- مشغولا- پېښه- (۲)ساعت (وخت) تېرونه- (۳)عېش- ښهٔ ژوند تېرونه-

دندې:(دن-دې)اسم- جمع- مؤنث- غاښې- غاښونه-

دنډه:(دن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- ځلے- ګټه-

دنډی:(دن-ډی)اسم صفت- واحد- مذکر- شریک- مل- جمع دنډیان-

دَ نس بنی:(دَ-نس-به-نې)اسم- واحد- مؤنث- دَ تنستې دَ اُبدلو تارونه- دَ کنې دَ اوډلو تارونه-

دَ نس تر خوله ایله:(دَ-نس-تر-خو-له-ای-له)اسم- (۱)چیړن- سیرن- نس ناسفے- سر بهے- (۲)اړونے بد-

دَ نس ناستهٔ:(دَ-نس-ناس-تهٔ)اسم- دَ نس بهېدنه- دست- لهٔ نسه کېدنه- اسهال-

دنکاچه:(دن-کا-چه)اسم- واحد- مؤنث- دونکاچه- جمع دنکاچې-

دَ نکریزو شپه:(دَ-نک-ری-زو-شپه)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ وادهٔ څخه وړاندې هغه رسم چې دَ هلک او جینۍ پهٔ لاسونو نکریزې پورې کولے شی- دَ نوکریزو شپه-

دنګ:(دنګ)صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)اوږ- جګ- دَ دنګې ونې خاوند- هسک- (۲)مست- نشه- مدهوش- (۳)کنګس- بې احساسه- (۴- اسم)ټوپ- ترپ-

دنګ:(دنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ شولو پاکولو پائېکو- دړدړے-

ےَ(تن-دےِ) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱ ،ئ(پیا-لئ) ،ې(مې-ره-وَل) ،ئ(ځی-رَل)

(۲)بانیچغ- شاپینکه- (۳)وګورئ دنګ غوټی- (۴)اسمان- اتم اسمان-

دنګ دنګ:(دنګ-دنګ)صفت- (۱)وچت وچت- لوړ لوړ- هسک هسک- پاس پاس- (۲- اسم)رپېدنه- لړزېدنه- دکېدنه- رېږدېدنه-

دنګرا:(دنګ-را)اسم- واحد- مذکر- د نرکس په شان یو بوټے چې په اُبو کښې شین کیږی او درې ښاخیزه پاڼې لری-

دنګړی:(دنګ-ړی)صفت- دانه دانه- زره زره- مېده- بیل-

دنګ غاړے:(دنګ-غا-ړے)صفت- واحد- مذکر- د دنګې غاړې خاوند-

دنګ غوټی:(دنګ-غو-ټی)اسم- یوه لوبه چې په غټو او وړو کاڼیو کولے شی- غټو کاڼو ته دنګ او وړو ته غوټی وائی- مرګاټی- پیټی-

دنګ غونډی:(دنګ-غون-ډی)اسم- وګورئ ځلورګی-

دنګل:(دنګ-ګل)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پهلوانانو د کشتئ ځائ- کاړه- اکاړه- (۲)ګڼه ګوڼه- مجمع-

دنګل:(دنګ-ګل)مصدر متعدی- دانګل- ورتل- خیز وهل- ټوپ وهل-

دنګ لوړ:(دنګ-لوړ)صفت- مذکر- د دنګې وُنې خاوند- دنګ قد لرونکے- دنګ قامتے-

دنګله:(دنګ-ګه-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دعویٰ- مناقشه- شخړه- دانګه- درنګه- د خلې جنګ- جم ؤ جوش- دنګه- (۲)غورې پرې-

دنګنه:(دنګ-ګه-نه)حاصل مصدر- وګورئ دنګل-

دنګو:(دنګ-ګو)اسم- بې له سرې کولو څخه د نینو پخونه-

دنګوچی:(دنګ-ګو-چی)اسم- نکوښېدنه- ګډ ګډ تلنه- د کډ سری تګ- دنګوچی-

دنګوچی:(دنګ-ګو-چی)اسم- وګورئ دنګوچی-

دنګول:(دنګ-ګه-ول)مصدر متعدی- دانګول- پورته پورته اچول-غرځول- په لاسونو کښې پورته پورته کول- ماشوم له په لاسونو کښې ټالی ورکول- (۲)لوړول- وچتول- (۲)له ځایه لرې کول- غرځول- ایسته کول- موقوفه کول-

دنګون:(دنګ-ګه-ون)حاصل مصدر- وګورئ دنګول-

دنګونکے:(دنګ-ګون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دنګل-

دنګونګ:(دنګ-ګه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دنګول-

دنګونه:(دنګ-ګه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ دنګول-

دنګه:(دنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د مزرو بوټے- (۲)وګورئ دنګله-

دنګه:(دنګ-ګه)اسم صفت- د دنګ مؤنث-

دنګه دنګه:(دنګ-ګه-دنګ-ګه)کلمه- د ماشوم د قلارولو یا اوده کولو کلمه- الامو-

دنګه دنګه چی:(دنګ-ګه-دنګ-ګه-چی)اسم- د ماشوم ښکته پورته کونه- د ماشوم دنګونه-

دنګېدل:(دنګ-ګې-دل)مصدر لازم- (۱)پورته پورته غرځېدل/کېدل- ښکته پورته غرځېدل- (۲)لوړېدل- وچتېدل- (۲)غرځېدل- لرې کېدل- موقوفه کېدل-

دنګېدلے:(دنګ-ګې-دهٔ-لے)مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دنګېدل-

دنګېدن:(دنګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ دنګېدل-

دنګېدنګ:(دنګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دنګېدل-

دنګېدنه:(دنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دنګېدل-

دنګېدونکے:(دنګ-ګې-دون-کے)فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ دنګېدل-

دنګېدهٔ:(دنګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ دنګېدل-

د نماښام سترګه:(د-نما-ښام-ستر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- زهره- د نماښام ستورے- د مېلمانهٔ سترګه-

د نمر وریتاړه:(د-نمر-وری-تا-ړه)صفت- د نمر تاؤ- نمر سوزے- د نمر تودوښه-

دننے:(د-ننهٔ-نه-نے)صفت- (۱)داخلی- اندرونی- د داخل- د دننه- دننه سره متعلق- (۲)د نن ورځې- په نن مربوط-

دننه:(د-ننهٔ-نه)صفت- (۱)داخل- پکښې- د بهر ضد- (۲)ننوتی- ورکښې- اندرون- (۲- اسم)لرمون-

دننه وال:(د-ننهٔ-نه-وال)صفت- دننه- د کور دننه-

دنه:(د-نه)اسم- واحد- مؤنث- امیل- طوق- غاړکی- د ښځې د غاړې یو قسم کاڼه (پسول)-

دنه:(د-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دانه-

دنی:(د-نی)صفت- بداخلاقه- دون- پست- پربوتے- سپک- بې کاره-

دنیا:(دن-یا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نړی- جهان- عالم- (۲)شتهٔ- شتمنی- دارائی- مال متاع- دولت-

دنیاپرست:(دن-یا-په-رست)صفت- واحد/جمع- مذکر- وړسترګے- هغه څوک چې دنیا ئې ډېره خوښه وی-

دنیادار:(دن-یا-دار)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- شتمن- دولتمند- پیسه دار- موړ- مالدار-

دنیاداری:(دن-یا-دا-ری)اسم- مؤنث- (۱)شتمنی- دولتمندی- بډائی- مال حال- (۲)د دنیا لانجې کونجې- (۲)ټبرداری- کور- (۴)راشه درشه- تعلقات-

دنیاګی:(دن-یا-ګی)اسم- واحد- مؤنث- حقارتاً دنیا ته وئیلے شی- د دنیا اسم تصغیر-

دنیاوال:(دن-یا-وال)صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)نړی وال- (۲)د دنیا- جهانی-

دنیاوی:(دن-یا-وی)صفت- دنیائی- دنیوی- د دنیا- د جهان- په دنیا پورې مربوط-

دنیائی:(دن-یا-ئی)صفت- وګورئ دنیاوی-

دنیوی:(دن-یه-وی)صفت- وګورئ دنیاوی

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکوږ)، ه"(ز-ړه)، هٔ"(یو-بې-دهٔ)

دڼ دڼ:(دڼ-دڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوغکه- چرچڼه- چنچڼ- (۲- اسم صوت)د رباب اواز- ترنگ ترنګ- تڼ تڼ-

دڼکار:(دڼ-کار)اسم- واحد- مذکر- یو قسم تریخ بوټے چې د زخم راوستو (جوړولو) د سپړو ختمولو او په داروګانو کښې پکارولے شي-

دڼیا:(د-نیا)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم بوټے چې پاڼې ې د خوشبو او خوند د پاره په کټوی او چکنۍ وغیره کښې اچولے شي- ګشنیز- کروشه- دڼیه-

دڼي:(د-ڼي)اسم- مؤنث- دوڼي- لوغونه- لوغي-

دو:(دو)اسم- واحد- مذکر- (۱)زغل- منډه- تراټ- تړه- خفاسته- (۲)د جوارۍ داؤ- بازي- شرط- (۳- صفت)شرمنده- خجل- خړ- (۴)خجالت- خړونه- (۵)زیاتونه- جګونه-

دو:(دو)صفت- د ښځتو یا ښېډیو لوبه کښې د ښېړۍ صفت- دوګۍ-

دو:(دو)اسم- واحد- مؤنث- خورونه- زورونه- کړونه-

دواب:(د-واب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دوابه-

دوابه:(د-وا-به)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځاۍ (زمکه) چې د دوو سیندونو تر منځ وی- دواوه-

دوا:(د-وا)اسم- واحد- مؤنث- دومه- لوکے- لوخړه-

دوا:(د-وا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه دارو چې د مرض په علاج، بنه کولو یا د درد په تسکین کښې استعمالیږی- دارو- درمل- علاج- دوائي- (۲)د زنانو د سرو زرو یو تعویذ (ګاڼه)-

دواب:(د-واب)اسم- جمع- مذکر- څاروی- ڼنګر- حیوانات-

دواپاشی:(د-وا-پا-شي)اسم- واحد- مؤنث- دوا اچونه- دوا پاشنه- دوا شیندنه- درمل شیندنه-

دواپر:(د-وا-پر)صفت- مذکر- دعا کونکے- دعاګو- فاتحه کونکے- تسلي ورکونکے-

دوات:(د-وات)اسم- واحد- مذکر- مشواڼی- هغه د سیاهی بوتل چې د قلم څوکه پکښې رنګ کولے شي-

دواتیا:(دو-ات-یا)اسم عدد- وګورئ دوه اتیا-

دواتیایم:(دو-ات-یا-یم)صفت- مذکر- وګورئ دوه اتیایم-

دواخانه:(د-وا-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځاۍ چې دواګانې پکښې پرتې وی- درملتون-

د واره:(د-وا-ره)متعلق فعل/صفت- له تکه- سمدلاسه- ناڅاپه- فی الحال- وار له واره- فوراً-

دواړه:(دوا-ړه)صفت- دوسره- غبرګ- جفت- جوړه- یو ځاۍ-

دواساز:(د-وا-ساز)صفت- مذکر- دوا جوړونکے- دارو جوړونکے-

دواسازی:(د-وا-سا-زي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دوا جوړونه- (۲)د دارو جوړولو ځاۍ-

دوا سلام:(د-وا-سه-لام)اسم- مرکب- وګورئ دعا سلام-

دواکین:(دوا-کین)صفت- ډېر- زیات- دوچند-

دواګۍ:(د-وا-ګۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د اوګۍ په ځېر د ښځو یو کالے-

دوالیسم:(دو-آ-لي-سم)اسم- ډوولیزم-

دواله:(د-وا-له)اسم- په دوېم ځل پټے اړونه (یوې کونه)-

دوام:(د-وام)صفت- پائښت- ادامه- ثبات- بقا- هر وخت- همېشه والے- همېشه-

دوام دار:(د-وام-دار)صفت- مذکر- پائېدار- جاری- پوخ- عمری- کلک- محکم- هغه شے چې دوام لری او ژر نه خرابیږی- دوامداره-

دوامداره:(د-وام-دا-ره)صفت- مؤنث- وګورئ دوام دار-

د واوري چینجے:(د-واو-ري-چین-جے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم چینجے چې په زړه واوره کښې پېدا کیږی-

دواوه:(د-وا-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دوابه-

دواویا:(دو-ا-ویا)اسم عدد- وګورئ دوه اویا-

دواویایم:(دو-ا-ویا-یم)صفت- مذکر- وګورئ دوه اویایم-

دوائي:(د-وا-ئي)اسم- واحد- مؤنث- دوا- درمل- دارو-

دوب:(دوب)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ دوپ- (۲)غټ دبګ- (۳)بدبوئ- ترم-

دوباجه:(دو-با-جه)صفت- دوچنده- دوه ځلی- دوه کرتی- ډبل- یو په دوه-

دوبار:(دو-بار)صفت- دوېم ځلی- دوېم ځل- دوباره- بیا-

دوبارد:(دو-با-ره)صفت- خسکی چرګ یا چرګوړے- خسک چرګ- هغه چرګ یا چرګه چې پلار ې کولنګی او مور ې خسکه وی-

دوباره:(دو-با-ره)صفت- وګورئ دوبار-

دوباره دوباره:(دو-با-ره-دو-با-ره)صفت- مرکب- بار بار- بیا بیا- دوبار دوبار-

دوباړے:(دو-با-ړے)اسم- واحد- مذکر- هغه لنډ او پلن لرګے چې د جامو وینځلو په وخت کښې پرې جامې ټپولے (وینځلے) شي- ټپنے- ګوباړے-

دوبته:(دو-به-ته)اسم- واحد- مؤنث- جوبته- جبېته- څادر-

دوبچه:(دوب-چه)اسم- واحد- مؤنث- دوچه- دېچه-

دوبره:(دوب-ره)اسم- واحد- مؤنث- د کنې خله- توبره-

دوبره:(دو-ب-ره)اسم صفت- هغه ټوکے (رخت) چې عرض ې د یو معین ټوکی نه یو په دوه لوئ زی- دوه برے- لوئ برے-

دوبژن:(دوب-ژن)صفت- دربجن- دوپجن- بدبویه- سوړبویه- تربوخته- هغه خواړه چې د ګرمی یا د زیات وخت د تېرېدو په سبب خراب شي او بوئ پیدا کړی-

دوبژن اوړه:(دوب-ژن-او-ړه)اسم- هغه اوړه چې د ګرمی او دوب په وجه تراخه شوی وی-

دوبغرکه:(دو-بغر-که)اسم صفت- یو په دوه-

دوبکنے:(دوب-که-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- د دوبی- د اوړی-

ئ (خې-رل)، ې(صې-ره-ول)، ی(ېیا-لې)، ے(تن-دیے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

اوړی سره متعلق-

دوبکوړے:(دوب-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- بانډه- وړوکے کلے-

دوبکوړے:(دوب-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- بانډه- ایلبند- میله- ایلاق- دَ غرهٔ هغه ځائ چې مالداره خلق پهٔ اوړی کښې خپلې رمې او گلې دَ ساتنې او پوونې دَ پاره ملته بوځی- (افغانستان)-

دوبندی:(دو-بن-دی)اسم- مؤنث- (۱)بند- پیوند- دَ دوو څیزونو دَ یو ځائ کېدو ځائ- (۲)طوق- امیل- غاړکی- غاړگی-

دوبندی:(دو-بن-دی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ اُبو وله چې دوه خایه تقسیم شوې وی-

دوبنے:(دو-به-نے)صفت- مذکر- دَ دوبی- دَ اوړی- وُگوره دوبکنے-

دوبنه:(دو-بهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ دوبی ښځه- دَ دوبیانو دَ کورنی ښځه- دوبه-

دوبول:(دو-بول)اسم- واحد- مذکر- دوه بول- دوه پښې لرونکے- انسان- دَ دوو پښو خاوند-

دوبه:(دو-به)صفت- (۱)وُگوره دوپه- (۲- اسم)اوړے- دَ گرمی موسم-

دوبه:(دو-به)اسم- واحد- مؤنث- دوبنه- دَ دوبی ښځه- پهٔ بیعه جامې وینځونکې-

دوبی:(دو-بی)اسم- واحد- مذکر- جامې وینځونکے- هغه څوک چې دَ جامو وینځلو کسب کوی- دوړے- پوبی- (م- دهوبی هندی)-

دوبیاړے:(دُوب-یا-ړے)اسم- واحد- مذکر- دوبیادر- یو قسم بانډه-

دوبی خانه:(دو-بی-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځائ چې دوبیان پکښې جامې وینځی-

دوبیتی:(دو-بی-تی)اسم- یو قسم نظم چې دوه بیته لری- وړومبی، دوېمه او څلورمه مصرعه ئې رباعی غُندې پهٔ یوه قافیه وی خو وزن ئې دَ رباعی پهٔ شان نهٔ وی-

دوبیل:(دو-بیل)اسم- واحد- مذکر- (۱)وره بېله- وړوکے ټاپو- وره جزیره- (۲)دَ دوؤ سیندونو یا دریابونو دَ یو ځائ کېدو ځائ-

دوبے:(دو-بے)اسم- واحد- مذکر- وُگوره اوړے-

دوپ:(دُوپ)اسم- واحد- مذکر- دپ- دپه هوا- دوب- خوپره-

دوپا:(دو-پا)اسم- مؤنث- څپلی-

دوپال:(دو-پال)اسم- واحد- مذکر- هغه لوئ کمر یا تیره چې چینه ترې راوتلې وی-

دوپتی:(دوپ-تی)اسم- واحد- مؤنث- مقوا- دپتی- دَ کتاب کلکه او نری پشتی- قایه- وقایه- کانتی- وزر-

دوپټ:(دو-پټ)صفت- دوه چنده- دوه برابره-

دوپټه:(دُو-پ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دوه پاټکیزه- دوه پله نیزه پوړی- دوه پټیزه خینه (زینه)- دوه پټیزه درپه- دوه پټې درپایه-

دوپټه:(دُو-پ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- لوپټه- دَ ښځو څادر- دَ پسرولو وړوکے څادر- جمع دوپټې-

دوپچن:(دوپ-چن)اسم صفت- واحد- مذکر- وُگوره دوبجن-

دوپچنول:(دوپ-چه-نه-ول)مصدر متعدی- وُگوره دوبجنول-

دوپړ:(دو-پړ)اسم صفت- واحد- مذکر- ټگ- چمباز- چلباز- چلولی- دوپه- غولونکے-

دوپړ:(دو-پړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کړاو- مصیبت- پریشانی- (۲)ستومانی-

دوپړ:(دوپړ)اسم- واحد- مذکر- دوکړه- طبله- دوپړی- دَ موسیقی یوه مشهوره آله-

دوپړه:(دوپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- تته شیشه- دوبره-

دوپړه:(دوپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دوپړ- طبله- دوکړی-

دوپړه مار:(دوپ-ړه-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- دوپړی غږونکے- دوپړی وهونکے-

دوپړی:(دوپ-ړی)اسم- مؤنث- پریشانی- خواری- مفلسی- دوپړ-

دوپړی:(دوپ-ړی)اسم- جمع- مؤنث- اپړی دوپړی- لاټې-

دوپړی:(دوپ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دوکړی- دوپړه- دوکړه- دَ نغارې پهٔ شان دَ تنگ ټکور یوه آله- طبله-

دوپن:(دو-پن)اسم- واحد- مذکر- دَ ښځو دَ سر هغه اوږدهٔ ویښتهٔ چې شا ته پراته وی- چوټی- کوڅی- کونڅی- کمڅی-

دوپنځوس:(دو-پن-ځوس)اسم عدد- ۵۲- دَ یو پنځوس او درې پنځوس تر مینځه عدد-

دوپنځوسم:(دو-پن-ځو-سم)صفت- عددی صفت چې دَ یو پنځوسم او درې پنځوسم تر مینځه درجه ښائی-

دوپوړه:(دو-پو-ړه)صفت- (۱)دوه پوړیز- دوه منزله- (۲)دوه خله- دوه واره-

دوپه:(دو-په)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پوپه- دروهلے- غولونکے- ټگ- دوپړ- چمباز- (۲)بیوسه- غریب- سربداگه-

دوپه:(دو-په)اسم- واحد- مؤنث- دوکه- فریب-

دوپه دوپیا:(دُو-په-دُوپ-یا)اسم مرکب- مؤنث- دوپ- دپه هوا- بنده هوا- حبسه هوا-

دوپیازه:(دُو-پیا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټکولے شوے پرپوس چې پیاز او مصالحه کښې ویشولے شی- (۲)نکولے- پخکړے- ښوروا-

دوپې:(دو-پې)اسم- جمع- مؤنث- لاټې- لاپې- پوزې- پونې- لوئ لوئ خبرې-

دوپې مار:(دو-پې-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- لاټو- پوزمار- لاپو- لاپې کونکے-

دوت:(دوت)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دت- دَد- گنکس- ساه وتلے- ساه راکښلے- بې خانه- جوکیر-

دوتار:(دو-تار)اسم- واحد- مذکر- دوتاره- دَ موسیقی یوه آله-

دوتاره:(دو-تا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وُگوره دوتار-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زېر"(کـ-تـاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-بې-دهٔ)

دوتر:(دو-تَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ دفتر- (۲)ټيټاکے-

دوتري:(دو-تَ-ري)اسم صفت- وګورئ دفتري- دوترونه- (م- دفتري فارسي)-

دوتړه:(دوت-ړَه)اسم- مؤنث- مارچه- داسې سودا چې د مال او سودا په بدل کښې مال ورکړے شي-

دوتنه:(دو-تَهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وقايه- کاڼپي- د کتاب پښتي- د کتاب پوښ- قايه-

دوتنيار:(دو-تن-يار)اسم- واحد- مذکر- هغه څوک چې کتابونه ګنډي- صحاف- کتاب پلور- جلدساز-

دوتي:(دو-تي)اسم- واحد- مؤنث- ساړي- يو قسم لنګ چې زنانه يې تړي-

دوجال:(دُو-جال)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ دوجاله-

دوجاله:(دو-جا-له)اسم صفت- واحد- مذکر- دوه زړے- دودله- نکرژن- مشوش- حېران- دوه زړهٔ- متردد- مذبذب- په لانجه او کشاله کښې ګېر- په تنکسيا کښې ګېر- دوجال-

دوجانبه:(دو-جا-ن-به)صفت- دوه جانبه- دوه طرفه- دو طرفين-

دوچار:(دو-چار)صفت- واحد- مذکر- (۱)اخته- لګيا- مشغول- مصروف- (۲)مخامخ- ورباندې اوښتے- وګورئ دوڅار-

دوچتيز:(دو-چه-تيز)اسم صفت- دوه چته لرونکے-

دوچند:(دو-چند)صفت- دوه چنده- يو په دره- دوه دونه-

دوچنده:(دو-چن-ده)صفت- وګورئ دوه چند-

دوچه:(دو-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ورکوټے ډنډ- وړوکے حوض- کوچنے جوړ- (۲)بيچه- دوبچه- جوبه- لښتے- جووه- هغه لوړې لوړې پولې چې په پټي کښې جوړولے شي او مينځ يې ژور وي

دوڅار:(دو-څار)اسم صفت- ښکاره- په ډاګه- څرګند- جوت- معلومه- پېښ- دوچار- وګورئ دوچار-

دوڅلوېښت:(دو-څل-وېښت)اسم عدد- ۴۲- د يو څلوېښت او درې څلوېښت تر مينځه عدد-

دوڅلوېښتم:(دو-څل-وېښ-تَم)صفت- عددي صفت چې د يو څلوېښتم او درې څلوېښتم تر مينځ درجه ښائي-

د وختنے:(دُ-وَخ-ته-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پخوانے- مخکښينے- وړاندينے- لرغونے- (۲)وړاندې- پخوا- مخکښې- د وخته-

د وخته:(دُ-وَخ-ته)اسم صفت- وګورئ د وختنے-

دوخته:(دوخ-ته)اسم صفت- ګنډلې شوې- ګنډلې-

دوخړه:(دُو-خَه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- لوخړه- لوګے- دود- ګڼ دود- غړوسکه- خړوسکه- خوړسکه-

دود:(دود)متعلق فعل- په ډول- په څېر- په شان- غندې- دغسې- هو به هو- په مثل-

دود:(دُود)اسم- واحد- مذکر- (۱)رواج- رسم- دستور- آئين- (۲)مځوب- کلتور- کلچر- ثقافت- فرهنګ- (۳)قاعده- طريقه- انداز- لاره- لياره- لوښه- باب- چلند-

درد:(دُود)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوګ- لګے- لوګے- لو- (۲)قربان- خار- صدقه-

دودآلود:(دود-آ-لود)اسم صفت- مرکب- په لوګو لړلے- تور- زېړ-

دودبايده:(دود-باي-ده)اسم مرکب- سيالي- رواج- د خپښي مناسبت- د دوستۍ او خپښي اړيکې- د وادهٔ دود دستور- (کول مصدر)- (افغانستان)-

دودبويه:(دود-بو-يه)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ دودجن-

دودجن:(دود-جَن)اسم صفت- واحد- مذکر- دودبويه- هغه څيز چې د لوګي خوند يې اخستے وي- لوګو وهلے-

دودخانه:(دود-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ دومخانه-

دود دستور:(دود-دَس-تُور)اسم مرکب- واحد- مذکر- رسم و رواج- آئين-

دودسته:(دو-دس-ته)متعلق فعل- په دوه لاسي- په دواړه لاسه-

دودکادود:(دود-کا-دود)اسم مرکب- مذکر- لوخړه- ګڼ دود- خوړسکه- غړسکه-

دودکښ:(دود-کښ)اسم- واحد- مذکر- دودکش- د لوګي وتو موري- هغه سورے چې لوګے پکښې زخي-

دودکه:(دو-دهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم بوټے چې پاڼې يې د کاڅرو د پاڼو په څېر وي، بېخ يې سپين او پيو کښې پخولو سره تړي يو خوندور خوراک جوړ شي-

دودل:(دو-دل)مصدر- دل کېدل- ټکولے کېدل- دوردل- ورغستلے کېدل-

دودل:(دو-دَل)صفت- دل- دل شوے- ټکولے شوے- دوردل- جوکوب- ګور- ورغستلے- نيم مات-

دودلي:(دو-دَ-لي)اسم- مؤنث- دل کونه- وهنه- ټکونه- مښنه-

دودلے:(دو-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- (۱)مښلے شوے- موښلے- (۲)دل کړے شوے- ټکولے شوے-

دودمان:(دود-مان)اسم- واحد- مذکر- خاندان- قبيله- (م- فارسي)-

دودن:(دُو-دن)صفت- حشر نشر- هنګامه- ګڼه ګونه-

دودو:(دُو-دُو)متعلق فعل- (۱)په منډه منډه- تېز تېز- په خفاسته- (۲)اخجالت- خړپړ-

دودو:(دُو-دُو)اسم- يو قسم مارغهٔ-

دودول:(دو-ده-وَل)مصدر متعدي- (۱)څورول- تهديدول- زورول- (۲)قهرول- عصبي کول- په عذابول-

دودول:(دُو-دَ-ول)مصدر متعدي- (۱)لوګے کول- لوګے ترې ايستل- سوځول- (۲)قربانول- جارول- خارول- صدقه کول- (۳)رواجول- عامول-

دودولے:(دو-دَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع دودولي- مؤنث دودولې- وګورئ دودول-

دودولے:(دُو-دَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع دودولي- مؤنث دودولې- وګورئ دودول-

ئ (ځي-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ي (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱.

دودون:(دو-د-ون)حاصل مصدر- وګورئ دودول-

دودون:(دو-د-ون)حاصل مصدر- وګورئ دودول-

دودونکے:(دو-د-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دودونکی- مؤنث دودونکې- وګورئ دودول-

دودونکے:(دو-د-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دودونکی- مؤنث دودونکې- وګورئ دودول-

دودونګ :(دو-د-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دودول-

دودونګ :(دو-د-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ دودول-

دودونه :(دو-د-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دودول-

دودونه :(دو-د-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دودول-

دوده:(دو-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څښت- دودے- هغه تعویذ یا څابت چې ناروغه ته لوګے کولے شي-

دوده:(دو-ده)اسم- (۱)هغه اُور چې لمبه نۀ کوی او نرے نرے دود ترې پورته کیږی- دوده- دومه- (۲)تتی-

دودی:(دو-دی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سیاهی- (۲)دوات- مشوانړی-

دودی:(دو-دی)اسم- مؤنث- بانړ- اړوب- هغه اُوړۀ چې وړومبے پۀ اُوړو کښې حل کولے شي او بیا د ښوروا ټینکولو د پاره ښوروا کښې اچولے شي- بنړ-

دودی:(دو-دی)صفت- واحد- مذکر- (۱)ګټور- مفید- د ګټې وړ- (۲)ګټه خوښونکے- ګټه غښتونکے-

دودیالے:(دود-یا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- پۀ دود دستور پوه-

دودېدل:(دو-دي-دل)مصدر لازم- (۱)زوربدل- تهدیدېل- خوربدل- (۲)پۀ عذابېدل- تهربدل-

دودېدل:(دو-دي-دل)مصدر لازم- (۱)لوګے کېدل- سوځېدل- (۲)صدقه کېدل- خاربدل- جاربدل- قربانېدل- (۲)رواج کېدل- عام کېدل- رواجبدل-

دودېدن:(دو-دي-دن)حاصل مصدر- وګورئ دودېدل-

دودېدن:(دو-دي-دن)حاصل مصدر- وګورئ دودېدل-

دودېدنګ:(دو-دي-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دودېدل-

دودېدنګ:(دو-دي-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ دودېدل-

دودېدنه:(دو-دي-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دودېدل-

دودېدنه:(دو-دي-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ دودېدل-

دودېدونکے:(دو-دي-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دودېدونکی- مؤنث دودېدونکې- وګورئ دودېدل-

دودېدونکے:(دو-دي-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع دودېدونکی- مؤنث دودېدونکې- وګورئ دودېدل-

دودېدۀ:(دو-دي-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ دودېدل-

دودېدۀ:(دو-دي-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ دودېدل-

دودېرش:(دو-دېرش)اسم عدد- ۳۲- د یو دېرش او درې دېرش تر مېنځه عدد-

دودېرشم:(دو-دېر-شم)صفت- عددی صفت چې د یو دېرشم او درې دېرشم تر مېنځ درجه ښائی-

دودېرشیزه:(دو-دېر-شي-زه)اسم- مؤنث- د لویدیزې موسیقۍ پۀ نوټېشن کښې یوه نښه-

دور:(دور)اسم- واحد- مذکر- د غوږ یو کالے- دُر- دوړ-

دور:(دُر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وګورئ دوړ- (۲- اسم- واحد- مذکر-) وګورئ دُر-

دور:(دور)صفت- آخری- لرې- جدا-

دور:(دور)اسم- واحد- مذکر- د نانبائی د دکان هغه ښانک چې اوړۀ پکښې اغږی- د نانبائی د اوړو اخښلو کونال-

دور:(دور)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګردش- حرکت- چکر- څرخ- څرخېدنه-- د یو څیز پۀ خپل ځائې حرکت او ګرځېدنه- (۲)زمانه- دوران- وخت-

دوران:(دو-ران)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دور-

دوراندېش:(دور-ان-دېش)اسم صفت- واحد- مذکر- پېش بین- عاقبت اندېش- محتاط- عقلمند- هغه څوک چې د یوې موضوع څو یا ټولو اړخونو ته خیر کیږی او یا د یوۀ کار پائې او عاقبت ته ګوری-

دوراندېشي:(دور-ان-دي-شي)اسم- مؤنث- عقلمندی- احتیاط- پېش بینی- د یو کار پائې او عاقبت ته فکر کونه-

دورانی:(دو-را-نی)صفت- متحرک- پۀ حرکت کښې- پۀ جریان کښې- د دوران-

دوراهی:(دو-را-هی)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځائې چې دوه لارې سره یو ځائې کیږی یا سره بیلیږی- دوه لارې- دورانی-

دورایه:(دو-را-یه)اسم- وګورئ دوره (۱)-

دورانی:(دو-را-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ دوراهی- (۲- صفت- مذکر)دوجاله- دوه زړے-

دوربکی:(دور-به-کی)اسم- مؤنث- چوکری- چوپړ- خدمت-

دوربه:(دور-به)اسم- مؤنث- (۱)بارانی هفته- هغه اونۍ چې زیات باران پکښې اوری- (۲)دربه- توره دربه- د ژمی د ورځو هغه وختونه چې آسمان پۀ وریځو پټ وی- (۳)خول- جړی-

دوربه:(دور-به)اسم- واحد- مذکر- خدمت کونکے- نوکر- چوپړے- چوکر- خدمتګار- جمع دوربه ګان-

دوربین:(دور-بین)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دوراندېشه- خیرک- هوښیار- پوه- (۲)هغه څوک چې لرې څیز ښۀ لیدلے شي-

دوربین:(دور-بین)اسم- واحد- مذکر- لرې لیدونکې یوه آله چې د لرو څیزونو د لیدو د پاره استعمالیږی- ټېلسکوپ-

زبر "(خ-بۀ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ۀ (ز-ره)، ۀ (پو-بې-دۀ)

راکړه:(راک-ړه)حاصل مصدر٬اسم- (۱)اخستنه- لهٔ بل چا دٔ یو شی دٔ اخستو عمل- (۲)مخاطب ته دٔ راکولو امر- راکه- روکه-
راکړه ورکړه:(راک-ړه-ور-کړه)اسم مرکب- ورکړه راکړه- لین دین- لاګ و پار-
راکس:(را-کس)اسم- دٔ غوبل دٔ غوایانو پله- دٔ غوبل پهٔ غوایانو کښې منځنے غوئے-
راکش:(را-کش)اسم صفت- (۱)راکښ- راکښل شوے- راڅکېدلے- (۲)راڅکول شوے-
راکښ:(را-کښ)اسم صفت- وګورئ راکش-
راکښته:(را-کښه-ته)اسم صفت- راکوز- رالاندې- ښکته- ټېټ-
راکښل:(را-کښل)مصدر متعدی- (۱)راایستل- راباسل- راوکښل- (۲)کشول- کش کول- څکول-
راکښلے:(را-کښهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع راکښلی- مؤنث راکښلې- وګورئ راکښل-
راکښنه:(را-کښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راکښل-
راکښوبے:(راک-ښو-بے)اسم- واټرپمپ- دٔ اُبو مشین- (افغانستان)-
راکښونکے:(را-کښون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راکښونکی- مؤنث راکښونکې- وګورئ راکښل-
راکښے:(را-کښے)اسم- (۱)راکښنه- (۲)راشروع- رالاندې- وګورئ راښکے-
راکوز:(را-کوز)اسم صفت- راښکته- رالاندې- راټېټ-
راکوزول:(را-کو-زَ-ول)مصدر متعدی- (۱)کوزول- راښکته کول- لهٔ پاس نه کوزول- (۲)لهٔ مقامه یا چوکۍ څخه لرې کول- راټیټول- رالوول- لرې کول-
راکوزون:(را-کو-زَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ راکوزول-
راکوزونکے:(را-کو-زَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راکوزونکی- مؤنث راکوزونکې- وګورئ راکوزول-
راکوزونه:(را-کو-زَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راکوزول-
راکوزېدل:(را-کو-زې-دل)مصدر لازم- (۱)راښکته کېدل- (۲)لهٔ مقامه یا څهٔ عهدې نه اخوا کېدل- راټیټېدل-
راکوزېدن:(را-کو-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ راکوزېدل-
راکوزېدنه:(را-کو-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راکوزېدل-
راکوزېدونکے:(را-کو-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راکوزېدونکی- مؤنث راکوزېدونکې- وګورئ راکوزېدل-
راکوزېدهٔ:(را-کو-زې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ راکوزېدل-
راکول:(را-کَ-ول)مصدر متعدی- رااخیستل- لهٔ مقابل طرف نه دٔ یو شی ترلاسه کول- دٔ "ورکول" ضد-
راکون:(را-کَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ راکول-
راکونکے:(را-کَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راکونکی- مؤنث راکونکې- وګورئ راکول-
راکونه:(را-کَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راکول-
راکی:(را-کی)اسم- واحد- مذکر- وګورئ راقی-
راګ:(راګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سندره- نغمه- سرود- (۲)عیش- طرب- راګ رنګ- (۳)آهنګ- ټون- (۴)پرده- (۵)دٔ موسیقی مقام- مقام- دٔ سنګیت یو توک- دٔ کلاسیکی موسیقی دٔ اوو ګونو موېږ څخه یو موړ- (۶)مغه وضع شوے چوکاټ چې دٔ ختیزې موسیقی دٔ ترنګونو بنسټ جوړوی-
راګ:(راګ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم پرتوګ چې لهٔ وړغنو نه تیاریږی- پتلون-
راګرځول:(را-ګر-ځ-ول)مصدر- راستنول- راواپس کول- پهٔ شا راستنول- مخه نیول-
راګرځون:(را-ګر-ځ-ون)حاصل مصدر- وګورئ راګرځول-
راګرځونکے:(را-ګر-ځ-وون-کے)اسم فاعل- جمع راګرځونکی- مؤنث راګرځونکې- وګورئ راګرځول-
راګرځونه:(را-ګر-ځ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راګرځول-
راګرځېدل:(را-ګر-ځې-دل)مصدر لازم- راستنېدل- راواپس کېدل- پهٔ شا راستنېدل-
راګرځېدن:(را-ګر-ځې-دن)حاصل مصدر- وګورئ راګرځېدل-
راګرځېدنه:(را-ګر-ځې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راګرځېدل-
راګرځېدونکے:(را-ګر-ځې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راګرځېدونکی- مؤنث راګرځېدونکې- وګورئ راګرځېدل-
راګرځېدهٔ:(را-ګر-ځې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ راګرځېدل-
راګنی:(راګ-نی)اسم- دٔ موسیقی شعبه- ثانوی راګونه- دوه درجه ییز راګ-
راګېر:(را-ګېر)اسم صفت- (۱)بندی- حصار- راایسار- محصور- رابند- (۲)دوچار- اخته- لګیا- مشغول- مصروف-
راګېرول:(را-ګې-رَ-ول)مصدر- (۱)ایسارول- بندول- (۲)اخته کول-
راګېرون:(را-ګې-رَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ راګېرول-
راګېرونکے:(را-ګې-رَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راګېرونکی- مؤنث راګېرونکې- وګورئ راګېرول-
راګېرونه:(را-ګې-رَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راګېرول-
راګېرېدل:(را-ګې-رې-دل)مصدر لازم- ایسارېدل- بندېدل-
راګېرېدن:(را-ګې-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ راګېرېدل-
راګېرېدونکے:(را-ګې-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راګېرېدونکی- مؤنث راګېرېدونکې- وګورئ راګېرېدل-
راګېرېدهٔ:(را-ګې-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ راګېرېدل-
رال:(رال)اسم- دٔ چرګې دٔ اګی غوری- سندروس-

رالره:(را-لَ-ره)اسم ضمير- راله- راته- ما ته- زما دَ پاره-

راله:(را-له)اسم ضمير- وګورئ رالره-

رالېږل:(را-لې-ږل)مصدر متعدی- رااستول- لهٔ مقابله لوری دېخوا ته راستول- دَ "ورلېږل" مقابل-

رالېږلے:(را-لې-ږهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رالېږلی- مؤنث رالېږلې- وګورئ رالېږل-

رالېږن:(را-لې-ږن)حاصل مصدر- وګورئ رالېږل-

رالېږنه:(را-لې-ږهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رالېږل-

رالېږونکے:(را-لې-ږون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رالېږونکی- مؤنث رالېږونکې- وګورئ رالېږل-

رام:(رام)صفت- اصيل- اموخته شوے- تابع- مطيع- (فارسي/ژند)-

رامات:(را-مات)صفت- راخلاص- راپهٔ منږه- جمع کېدنه- راروان- راتلّنه-

رامباړه:(رام-با-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رامبوړه-

رامبوړه:(رام-بو-ړه)اسم صوت- رامباړه- بروه- دَ غوا مېښې وغېره اواز- جمع رامبوړې-

رامبېل:(رام-بېل)اسم- واحد- مذکر- رانبېل- رابېل- رمبېل- يو قسم ګل چې ډېر پهٔ زړهٔ پورې بوئ لری- نباتاتي نوم (JASMINUM)- جمع رامبېلونه-

رامت:(را-مَت)اسم- دَ رحمت مفغن-

رامچک:(رام-چک)اسم- لړ- لړی-

رامچونی:(را-م-چو-نی)اسم صفت- رانچوړیّ- (۱)راټول- راجُخت- راتـنګ- راغنډ- رايوځایٔ- (۲)خفه- مړاوے- مرور-

رامچونېدل:(را-م-چو-نې-دل)مصدر لازم- راټونډېدل- راماتېدل- جوغړی کېدل- جانګړی کېدل- ټنډ ټنډ کېدل- (۲)خفه کېدل- مړاوے کېدل- مرورېدل-

رامزدکے:(را-مزد-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ رامزدګے-

رامزدګے:(را-مزد-ګے)اسم- واحد- مذکر- رامزدکے- هغه غنډ منډ لرګے چې دَ ژرندې پل پرې ګرځی-

رامشت:(را-مشت)اسم صفت- ږولے- ښائيسته- ښکلے- دَ بدرنګ مقابل- (افغانستان)-

رامشت:(را-مشت)اسم- (۱)ساز- سرود- (۲)عيش- خوښی- (افغانستان)-

رامشتګر:(را-مشت-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- سندرغاړے- سندرې ويونکے- بدله ويونکے- ټوبې ويونکے- جمع رامشتګران- (افغانستان)-

رامکان:(را-م-کان)اسم- مذکر- پټو- وړين څادر- کېښ- دَ نارينه هغه څادر چې لهٔ وړئ نه جوړ وی-

رام ګل:(رام-ګل)اسم- واحد- مذکر- دَ يو ګل نامه-

راموسے:(را-مو-سے)اسم- هغه موسی چې مشک ترې لاس ته راځی-

راميا:(را-ميا)اسم- شپون- ګډبه-

رانجومه:(ران-جو-مه)اسم- واحد- مؤنث- رنجونه- رنجړونه- رانجړومه- رجړومه- ننجړومه- دَ رانجو او سلائی بوځکئ- جمع رانجومې-

رانجونونی:(ران-جو-نو-نی)اسم- واحد- مؤنث- رنجړومه- لجومه- لځرومه- لجړومه- رجړومه- هغه وړه کڅوړه چې دَ سترګو دارو يا رانجهٔ پکښې ساتلے شی- رانجومه-

رانجهٔ:(ران-جهٔ)اسم- جمع- مذکر- دَ سترګو تورولو دَ پاره پکارونکی دارو- کجل-

رانخړهٔ:(ران-خړهٔ)اسم- رنخړهٔ- ننخړهٔ- لنخړهٔ-

رانده:(ران-ده)اسم صفت- واحد- مذکر- بدکاره سړے- پهٔ بدو کړلو نه شرمېدونکے- مردود- شړلے شوے- رټلے شوے- (م- فارسی)-

راندېمان:(ران-دې-مان)اسم- محصول- حاصل- هغه څهٔ چې لاس ته راځی- (افغانستان)-

رانژن:(ران-ژن)اسم صفت- تيارهٔ- تت- لړه تيارهٔ- تيارهٔ ورمه- تيارهٔ غونے- (افغانستان)-

رانسکورول:(را-نس-کو-ر-ول)مصدر- (۱)راچپه کول- چپه کول- پهٔ بل مخ اړول- پړمخ کول- سرچپه کول- (۲)راځملول- (۳)ماتې ورکول- حريف يا غليم ته ماتې ورکول-

رانسکورون:(را-نس-کو-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ رانسکورول-

رانسکورونکے:(را-نس-کو-ر-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رانسکورونکی- مؤنث رانسکورونکې- وګورئ رانسکورول-

رانسکورونه:(را-نس-کو-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رانسکورول-

رانسکورېدل:(را-نس-کو-رې-دل)مصدر- (۱)راچپه کېدل- چپه کېدل- پهٔ بل مخ اړولے کېدل- (۲)ماتې ورکېدل-

رانسکورېدن:(را-نس-کو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ رانسکورېدل-

رانسکورېدنه:(را-نس-کو-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رانسکورېدل-

رانسکورېدونکے:(را-نس-کو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رانسکورېدونکی- مؤنث رانسکورېدونکې- وګورئ رانسکورېدل-

رانسکورېدهٔ:(را-نس-کو-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رانسکورېدل-

رانښتل:(را-نښهٔ-تل)مصدر- (۱)راګېرېدل- رابندېدل- (۲)جګړه نښلول- يو بل سره جغړی وهل- يو بل سره ايری وهل-

رانغاړل:(را-نغا-ړل)مصدر- (۱)راغړل- راتاوول- نغاړل- راټولول- (۲)هر شے پهٔ خلهٔ منډل- ټول خوارهٔ پهٔ خلهٔ منډل- (۳)حرص کول-

رانګن:(ران-ګن)اسم- بکيانړه- يو قسم ونه چې مېوه نهٔ لری- نباتاتی نوم ميليا ازدېرک (MELIA AZEDARACH)- (افغانستان)-

رانـنوتل:(را-نهٔ-نَ-و-تل)مصدر متعدی- خپل خان طرف ته دننه راتلل- دَ بهر نه دَ داخل خوا ته راتلل-

رانـنوتن:(را-نهٔ-نَ-و-تن)حاصل مصدر- وګورئ رانـنوتل-

رانـنوتـنه:(را-نهٔ-نَ-و-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رانـنوتل-

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ږو-بې-د

رانـنوتونکے:(را-نهٔ-نَ-وَ-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رانـنوتونکي- مؤنث رانـنوتونکې- وګورئ رانـنوتل-

رانـنه یستل:(را-نهٔ-نَ-یس-تَل)مصدر- ننه ایستل- راداخلول- رادننه کول- لهٔ بهر څخه دننه راوړل-

رانه:(را-نه)متعلق فعل- راڅخه- لهٔ مانه- زماڅخه- لهٔ ماڅخه- راشکه-

رانیول:(را-نی-وَل)مصدر- (۱)پهٔ لاسونو کښې نیول- یو شے لهٔ هوا څخه یا دَ منډې پهٔ حال کښې نیول- (۲)اخستل- پهٔ بیعه اخستل- پهٔ قیمت اخستل- خریداری کول-

رانیولے:(را-نی-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رانیولي- مؤنث رانیولې- وګورئ رانیول-

رانیون:(را-نی-وَن)حاصل مصدر- وګورئ رانیول-

رانیونکے:(را-نی-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رانیونکي- مؤنث رانیونکې- وګورئ رانیول-

رانیونګ:(را-نی-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رانیول-

رانیونه:(را-نی-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رانیول-

راڼهٔ:(را-ڼهٔ)اسم صفت- مذکر- پاک- شفاف- چې هیڅ خیرنے او ګرولے پکښې نهٔ وی- دَ "روڼ" جمع-

رانی:(را-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ایندوانی- میندوانی- یندوه- رانی- میندوه- دَ هندو مؤنث- (۲)دَ راجه ښځه- راجنه- راجګنه- ملکه- (۳)دَ باچا لور-

راواتهٔ:(را-وا-تهٔ)حاصل مصدر- دَ ورچنې راواتهٔ- دَ ورشنې راواتهٔ- رابهر ته کېدهٔ- لهٔ داخل یا دننه څخه راواتهٔ- دَ باندې راتګ- خروج- وګورئ راوتل-

راوتل:(را-وَ-تَل)مصدر- راښوکېدل- راښکاره کېدل- رابرڅېره کېدل- ورشنې راتلل- ورچنې راتلل- بېدیا ته راتلل- لهٔ دننه څخه رابهر کېدل- راخارجېدل- دَ باندې راوتل-

راوتن:(را-وَ-تَن)حاصل مصدر- وګورئ راوتل-

راوتـنه:(را-وَ-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راوتل-

راوتونکے:(را-وَ-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راوتونکي- مؤنث راوتونکې- وګورئ راوتل-

راوتهٔ:(را-وَ-تهٔ)حاصل مصدر- (۱)رالونېدهٔ- راښوکېدهٔ- رابرڅېره کېدهٔ- (۲)مشهورتیا-

راوټکے:(را-وَ-ټهٔ-کے/را-وَټ-کے)اسم- ورزکے دالان- (افغانستان)-

راوراندې:(را-وَ-ران-دې)متعلق فعل- وراندې- مخکښې- رامخکښې- رامخ ته-

راوړل:(راوْ-ړَل)مصدر متعدی- (۱)یو شے لهٔ یوځایٔ نه بل ځایٔ ته راانتقالول- (۲)زیږول- بچے زیږول- اولاد زیږول-

راوړن:(راوْ-ړَن)حاصل مصدر- وګورئ راوړل-

راوړنګ:(راوْ-ړَنګ)حاصل مصدر- وګورئ راوړل-

راوړنه:(راوْ-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راوړل-

راوړونکے:(راوْ-ړون-کے)فاعل/صفت- وګورئ راوړل-

راوړه:(راوْ-ړه)امر- وګورئ راوړل-

راوستل:(را-وَس-تَل)مصدر- رالېږدول- یو سا لرونکے (انسان، حېوان) پهٔ خپلو پښو یا یو بې سا (دَ څهٔ وسیلې پهٔ واسطه) خپلې خوا ته رانقلول- دَ بوتلل/بیول ضد-

راوستلے:(را-وَس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع راوستلي- مؤنث راوستلې- وګورئ راوستل-

راوستن:(را-وَس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ راوستل-

راوستـنګ:(را-وَس-تَـنګ)حاصل مصدر- وګورئ راوستل-

راوستـنه:(را-وَس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راوستل-

راوستونکے:(را-وَس-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راوستونکي- مؤنث راوستونکې- وګورئ راوستل-

راولاړېدل:(را-وَ-لا-ړې-دَل)مصدر- (۱)راپاڅېدل- راجګېدل- راودرېدل- راپاڅېدل- ویښېدل- بېدارېدل- (۲)قیام کول- (۳)جنګېدل- جګړه کول-

راولاړېدلے:(را-وَ-لا-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع راولاړېدلي- مؤنث راولاړېدلې- وګورئ راولاړېدل-

راولاړېدن:(را-وَ-لا-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ راولاړېدل-

راولاړېدنګ:(را-وَ-لا-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ راولاړېدل-

راولاړېدونکے:(را-وَ-لا-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راولاړېدونکي- مؤنث راولاړېدونکې- وګورئ راولاړېدل-

راولاړېدهٔ:(را-وَ-لا-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ راولاړېدل-

راوه:(را-وه)اسم- واحد- مؤنث- ملهم- ملم- مرهم- هغه دوا یا دارو چې پهٔ زخم لګولے شي-

راوی:(را-وی)اسم صفت- روایت کونکے- دَ بل چا دَ خبرې یا دَ قول څخه روایت کونکے- هغه څوک چې حدیث رانقلوی- (م- عربی)-

راوېستل:(را-وېس-تَل)مصدر- راوکښل- راوښکل- راایستل- رایستل- راباسل-

راوېستن:(را-وېس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ راوېستل-

راوېستـنه:(را-وېس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ راوېستل-

راوېستونکے:(را-وېس-تُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع راوېستونکي- مؤنث راوېستونکې- وګورئ راوېستل-

راه:(راه)اسم- (۱)لاره- (۲)دود- طریقه- قاعده- (م- فارسی)-

راهب:(را-هِب)اسم- عابد- پارسا- جمع راهبان- مؤنث راهبه- جمع مؤنث راهبې- (م- فارسی)-

راهبر:(راه-بَر)اسم صفت- راهنما- رهنما- بومیا- لارښونکے- جمع راهبران-

راهبری:(راه-بَ-ری)اسم- رهنمائی- هدایت- لارښونه-

راهدار:(راه-دار)اسم صفت- مذکر- تانه دار- لاره ساتونکے- هغه څوک چې

دَ لارې باج یا محصول اخلی۔

راهداری:(راه-دا-ری)اسم۔ لارپانه۔ دَ لارې یا پولې دَ تېرېدو اجازه لیک۔ دَ لارې یا سرحد نه دَ تېرېدو پانه۔

رامرو:(راه-رَو)اسم۔ (۱)ډیړی۔ سوب۔ تنګوړے۔ دالیز۔ دالان۔ کوشکن۔ (۲)دَ تېرېدو لاره۔ دَ تېرېدو ځایَ۔ (۳)لاروے۔ لاربه۔

راه روے:(راه-ر-وے)اسم۔ په لاره تلونکے۔

رامزن:(راه-زَن)اسم۔ لاره وهونکے۔ تاړ۔ راه ګیر۔ داړه مار۔ شوکمار۔ هغه څوک چې خلق په لارو کښې شوکوی۔

رامزنی:(راه-زَ-نی)اسم۔ شوکه۔ شوکماری۔ داړه۔

رامسکېدل:(را-مس-کې-دَل)مصدرِ لازم۔ راپاڅېدل۔ راولاړېدل۔ راجګېدل۔ (۲)راختل۔ راپورته کېدل۔ راښکاره کېدل۔

رامسکېدن:(را-مَس-کې-دَن)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رامسکېدل۔

رامسکېدنه:(را-مَس-کې-دَه-نه)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رامسکېدل۔

رامسکېدونکے:(را-مَس-کې-دُون-کے)اسمِ فاعل۔ واحد۔ مذکر۔ جمع رامسکېدونکی۔ مؤنث رامسکېدونکې۔ وګورئ رامسکېدل۔

رامسکېدهٔ:(را-مَس-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه۔ وګورئ رامسکېدل۔

رامېټ:(را-مېټ)اسمِ صفت۔ (۱)محلت مشر۔ مالت مشر۔ کندیدار۔ کلانتر۔ دَ کلی مشر۔ (۲)مَلک۔ خان۔

رامیسته:(را-میس-ته)حرف/متعلقِ فعل۔ راپهٔ دېخوا۔ دَ متکلم خوا ته۔

رامیسې:(را-مې-سې)حرف/متعلقِ فعل۔ لهٔ هغه وخته۔ لهٔ هغه راسې۔ دَ هغه رایسې۔ رایسې۔ رادېخوا۔

رای:(رای)اسم۔ وګورئ رایه۔

رایت:(را-یت)اسم۔ (۱)رعیَت۔ اولس۔ خلق۔ ملت۔ پرمان وړونکی خلق۔ دَ رعیّت یو قرأت۔ (افغانستان)۔ (۲)بیرغ۔ نښه۔

رایتول:(را-یه-تَ-ړل)مصدر۔ ربتول۔ ایلول۔ تابع کول۔ خلق په خپل واک او اختیار کښې راوستل۔

رایتون:(را-یه-تَ-وَن)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رایتول۔

رایتونکے:(را-یه-تَ-وون-کے)اسمِ فاعل۔ واحد۔ مذکر۔ جمع رایتونکی۔ مؤنث رایتونکې۔ وګورئ رایتول۔

رایتونه:(را-یه-تَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رایتول۔

رایج:(رایج/را-اِج)اسمِ صفت۔ مروج۔ رواج شوے۔ عام شوے۔ جاری شوے۔ (م۔ عربی)۔

رایستل:(را-یس-تَل)مصدر۔ راایستل۔ راوبستل۔ دَ باندې خارجول۔

رایستن:(را-یس-تَن)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رایستل۔

رایستنه:(را-یس-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رایستل۔

رایستونکے:(را-یس-تُون-کے)اسمِ فاعل۔ واحد۔ مذکر۔ جمع رایستونکی۔ مؤنث رایستونکې۔ وګورئ رایستل۔

رانیسته:(را-نیس-ته)حرف/متعلقِ فعل۔ رامیسته۔ رانیشته۔ رادېخوا۔ دېخوا ته۔ دې پلوَ۔

رانیشته:(را-نیش-ته)حرف/متعلقِ فعل۔ وګورئ رانیسته۔ رامیسته۔

رایله:(را-یهٔ-له)اسمِ صفت۔ راخَشے۔ ازاد۔ رها۔

رایه:(را-یه)اسم۔ (۱)اند۔ فکر۔ رایَ۔ (۲)ګروهه۔ عقیده۔ اعتقاد۔ (۳)دَ زړهٔ بصیرت۔

راپېدل:(را-یې-دَل)مصدر۔ وګورئ ریپېدل۔

رابجول:(را-یِ-ج-ړل)مصدرِ متعدی۔ رواجول۔ عامول۔ جاری کول۔

رابجونه:(را-یُ-ج-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رابُجول۔

رابجه:(را-یُ-جه)صفت۔ ښه۔ اعلی۔ وړمه۔ خوشبو۔

رابجېدل:(را-یُ-جې-دل/را-اِي-جې-دَل)مصدرِ لازم۔ (۱)رواجېدل۔ عامېدل۔ (۲)جاری کېدل۔

رابجېدن:(را-یُ-جې-دَن)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رابجېدل۔

رابجېدنګ:(را-یُ-جې-دَنګ)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رابجېدل۔

رابجېدنه:(را-یُ-جې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر۔ وګورئ رابجېدل۔

رابجېدونکے:(را-یُ-جې-دُون-کے)اسمِ فاعل۔ واحد۔ مذکر۔ جمع رابجېدونکی۔ مؤنث رابجېدونکې۔ وګورئ رابجېدل۔

رابجېدهٔ:(را-یُ-جې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه۔ وګورئ رابجېدل۔

رابګان:(را-یُ-ګان)اسم۔ (۱)زیریا۔ مفت۔ (۲)ضایع۔ عبث۔ توې۔

رانے:(رانے)اسم۔ (۱)وګورئ رایه۔ (۲)دَ لرغونی هند دَ واکمنانو لقب۔

رانے ګیری:(رانے-ګی-ری)اسم۔ مؤنث۔ رایه اخیستنه۔ رایه ورکونه۔ رایَ ورکونه۔

رَب:(رَب)اسمِ صفت۔ مذکر۔پالونکے۔ پروردګار۔ دَ الله تعالی یو صفتی نوم۔

ربا:(رِ-با)اسم۔ بیاج۔ سود۔ سوانی۔ ګټه۔

رباب:(رَ-باب)اسم۔ واحد۔ مذکر۔ (۱)دَ ساز یوه مشهوره آله۔ (۲)سپینه وریخ۔

ربابی:(رَ-با-بی)اسمِ صفت۔ واحد۔ مذکر۔ (۱)رَباب وهونکے۔ هغه څوک چې په رباب وهلو کښې مهارت لری۔ (۲)مستعد۔ دَ استعداد۔ دَ مهارت۔ جمع ربابیان۔

رُباعی:(رُ-با-عی)اسم۔ واحد۔ مونث۔ څلوریځه۔ دوبېتی۔ دَ شاعری یو مخصوص صنف۔

رباپ:(رَ-باپ)اسم۔ واحد۔ مذکر۔ وګورئ رباب۔ جمع رباپونه۔

رباط:(رِ-باط)اسم۔ پړاؤ۔ سرایَ۔

ربانی:(رَ-با-نی/رَب-با-نی)اسمِ صفت۔ (۱)رب ته منسوب۔ دَ رب۔ (۲)عارف۔ عابد۔ (م۔ عربی)۔

ربانه:(رَ-با-نه)اسم۔ واحد۔ مؤنث۔ سپوږمی۔

ربپالے:(رَب-پا-لے)اسمِ صفت۔ منے۔ مُتقی۔ پرهېزګار۔ عابد۔ زاهد۔ عبادت کونکے۔

زبر "(غ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(کِ-تاب)، جزم "(شکوڼ)، ه "(زَ-ړه)، هٔ "(ړو-بې-دهٔ)

ربح:(ر-بح)اسم- گټه- نفع- مفاد- د پیسو گټه- تکتانه- بهره- سود-

ربده:(رب-ده)اسم- واحد- مؤنث- رشبېل- پارو- رپیه- راشپېل- هغه د لرگی ښاخی چې په درمن کښې پرې دانې بادولے شي- جمع ربدې-

ربړ:(ر-بړ)صفت- ستونځه- زحمت- کړاؤ- تکلیف- عذاب- ربړه- زغفر-

ربړ:(ر-بړ)اسم- واحد- مذکر- د ځنې ونو د سلېښ ناکې مادې نه جوړېدونکے هغه څیز چې ټانرونه وغېره ترې جوړولے شي- جمع ربړونه-

ربړا:(رب-ړا)اسم- (۱)ربړ- زیار- (۲)ریاضت- په عبادت کښې زیار او زحمت کول-

ربړاؤ:(رب-ړاؤ)اسم- تکلیف- ربړه- زحمت- کړاؤ- چېړچاړ- ربړونه- خورونه- ټونگه اچونه- بدرنگه کونه-

ربړژن:(ر-بړ-ژن)اسم صفت- سخت- گران- دروند-

ربړزکے:(رب-ړو-کے)اسم صفت- توربدلے- تربدلے- ړار شوے- تورخوړلے- (افغانستان)-

ربړول:(رب-ړ-ول)مصدر متعدي- کړول- په عذابول- په تکلیف کول- په کړاؤ اخته کول- خورول- چېړچاړ کول-

ربړولے:(رب-ړ-وه-لے)اسم مفعول- جمع ربړولی- مؤنث ربړولې- وگورئ ربړول-

ربړون:(رب-ړ-ون)حاصل مصدر- وگورئ ربړول-

ربړونکے:(رب-ړ-وون-کے)اسم فاعل- جمع ربړونکی- مؤنث ربړونکې- وگورئ ربړول-

ربړونگ:(رب-ړ-ونگ)حاصل مصدر- وگورئ ربړول-

ربړونه:(رب-ړ-وه-نه)حاصل مصدر- وگورئ ربړول-

ربړه:(رب-ړه)اسم- مناقشه- مجادله- جگړه- جنجال- د خلې جنگ او جگړه- شخړه- ربړ- زحمت- کړاؤ- ستونځه- جمع ربړې-

ربړی:(رب-ړي)اسم صفت- (۱)ربړیز- رابړی- دربړ- ربړ ته منسوب- هغه څه چې ربړ نه جوړ شوی وی- (۲)یو قسم خواړه چې د پیو نه جوړولے شي-

ربړیالے:(ربړ-یا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- زحمت کښ- زیارگالونکے- زیارایستونکے- (افغانستان)-

ربړیز:(رب-ړیز)اسم صفت- (۱)وگورئ ربړی- (۲)جنجالی- جگړه نی- جگړه نیز- هغه څوک چې ډېر جنجالی وی-

ربړینه:(رب-ړي-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- له ربړ نه جوړه-

ربړېدل:(رب-ړې-دل)مصدر لازم- کړېدل- په کړاؤ اخته کېدل- په زحمت کېدل- خورېدل- غمېدل-

ربړېدلے:(رب-ړې-ده-لے) اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ربړېدلی- مؤنث ربړېدلې- وگورئ ربړېدل-

ربړېدنگ:(رب-ړې-دنگ)حاصل مصدر- وگورئ ربړېدل-

ربړېدنه:(رب-ړې-ده-نه)حاصل مصدر- وگورئ ربړېدل-

ربړېدونکے:(رب-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ربړېدونکی- مؤنث ربړېدونکې- وگورئ ربړېدل-

ربړېده:(رب-ړې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وگورئ ربړېدل-

ربړېژن:(رب-ړې-ژن)اسم صفت- تکلیف ورکونکے- زحمت ورکونکے-

ربزکے:(رب-زه-کے)اسم- یو قسم مارغه-

ربړوکے:(رب-ړو-کے)اسم صفت- خوارکے- بې وسه- ناتوانه- بې توانه- (افغانستان)-

ربط:(ربط)اسم- (۱)تړون- اړه- اړیکے- تړاؤ- (۲)تعلق- مېل جول- (۳)نسبت- (۴)دوستی- محبت-

ربع:(ر-بع)اسم- (۱)څلورم- (۲)څلورمه حصه-

ربغړ:(رب-غړ/ر-ب-غړ)اسم- بال بچ- واړه زاړه- ټبر- کهه- ریل- ښځه خاوند او بال بچ-

ربغړ:(رب-غړ)اسم صفت- لغړ- بربنډ- مفلس- مؤنث ربغړه-

ربغړے:(رب-غه-ړے)اسم صفت- (۱)بربنډ- لغړ- لپړ- (۲)خوار- بې وزلے- غریب- مفلس-

ربل:(ر-بل)اسم صفت- (۱)منلے- قبول- (۲)خوښ- مقبول- زړه ته نژدې- زړه ته تېر- (افغانستان)-

ربل:(ر-بل)اسم- (۱)پېرزوینه- لورینه- رواداری- (۲)ښه سلوک- ښه اخلاق- ښه رویه-

ربلول:(رب-ل-ول)مصدر متعدی- (۱)پېرزوینه کول- لورینه کول- رواداری کول- (۲)ښه سلوک کول- ښه گوزاره کول- (۳)منل- قبلول- خوښول- (افغانستان)-

ربلولے:(رب-ل-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ربلولی- مؤنث ربلولې- وگورئ ربلول-

ربلون:(رب-ل-ون)حاصل مصدر- وگورئ ربلول-

ربلونکے:(رب-ل-وون-کے)اسم فاعل- جمع ربلونکی- مؤنث ربلونکې- وگورئ ربلول-

ربلونگ:(رب-ل-ونگ)حاصل مصدر- وگورئ ربلول-

ربلونه:(رب-ل-وه-نه)حاصل مصدر- وگورئ ربلول-

ربلونے:(رب-لو-نے)اسم- واحد- مذکر- بې موره گډورے- بې موره وریے- بې مزره وزغومے- جمع ربلونی-

ربلېدل:(رب-لې-دل)مصدر لازم- خوښېدل- قبلېدل- لورېدل- پېرزو کېدل-

ربلېدلے:(رب-لې-ده-لے)اسم مفعول- جمع ربلېدلی- مؤنث ربلېدلې- وگورئ ربلېدل-

ربلېدن:(رب-لې-دن)حاصل مصدر- وگورئ ربلېدل-

ربلېدنگ:(رب-لې-دنگ)حاصل مصدر- وگورئ ربلېدل-

ربلېدنه:(رب-لې-ده-نه)حاصل مصدر- وگورئ ربلېدل-

ربلېدونکے:(رب-لې-دون-کے)اسم فاعل- جمع ربلېدونکي- مؤنث ربلېدونکې- وګورئ ربلېدل-

ربلېده:(رب-لې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ربلېدل-

ربنول:(رب-ن-ول)مصدر متعدي- ربنول- ترزل- تورول- ترهول- ويرول-

ربنولے:(رب-ن-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ربنولي- مؤنث ربنولې- وګورئ ربنول-

ربنون:(رب-ن-ون)حاصل مصدر- وګورئ ربنول-

ربنونکے:(رب-ن-وون-کے)اسم فاعل- جمع ربنونکي- مؤنث ربنونکې- وګورئ ربنول-

ربنونګ:(رب-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ربنول-

ربنونه:(رب-ن-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ربنول-

ربنېدل:(رب-نې-دل)مصدر لازم- ترېدل- تورېدل- ترهېدل- دارېدل- بېرېدل- ويرېدل- يرېدل-

ربنېدلے:(رب-نې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ربنېدلي- مؤنث ربنېدلې- وګورئ ربنېدل-

ربنېدن:(رب-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ربنېدل-

ربنېدنګ:(رب-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ربنېدل-

ربنېدنه:(رب-نې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ ربنېدل-

ربنېدونکے:(رب-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ربنېدونکي- مؤنث ربنېدونکې- وګورئ ربنېدل-

ربنېده:(رب-نې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ربنېدل-

ربنوکے:(رب-نو-کے)اسم صفت- (۱)هوښيار او غښتلے ماشوم- (۲)ترهېدلے- دار شوے- تورېدلے- بېرېدلے-

ربنه:(ر-ب-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ربني- تته رڼا- لړه رڼا- د نمر لړه رڼا- (۲)په وريځ کښې د سپوږمۍ رڼا- (۳)وږمه- نرے باد-

ربنېدل:(رب-نې-دل)مصدر لازم- وګورئ ربنېدل-

ربنېدنه:(رب-نې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ ربنېدل-

ربنېده:(رب-نې-ده)حاصل مصدر- وګورئ ربنېدل-

ربني:(ر-ب-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ ربنه-

ربوبيت:(ر-بو-بي-يت)اسم- خدائي- الوهيت-

ربيټ:(ر-بيټ)اسم- يو قسم مېخ-

ربيع:(ر-بيع)اسم- (۱)پسرلے- ځرمونے- سپرلے- (۲)سمسورتيا- (۳)د غنمو د فصل وخت-

ربيع الاول:(ر-بي-عل-ا-ول)اسم- لومړئ خور- وړومبۍ خور- مشره خور- د قمري کال دريمه مياشت-

ربيع الثاني:(ر-بي-عث-ثا-ني)اسم- ربيع الآخر- دوهمه خور- ربيع الاول پسې مياشت- د قمري کال څلورمه مياشت-

ربينه:(ر-بي-نه)اسم- د غوږ پرده- پرده- (افغانستان)-

رپ:(رپ)اسم- (۱)رپا- رپېدنه- لړځېدنه- لرخېدنه- اهتزاز- خوربېدنه- (۲)خوځېده- حرکت-

رپ:(رپ)اسم- (۱)شبيه- لحظه- لږ وخت- آن- (۲)يودم- ژر-

رپ:(رپ)اسم- رپکے- موړه- رېک- توک بندي- په دېوال کښې لګېدلې تخته چې لوښي پرې اېښودے شي- رف خانه- رپکے-

رپا:(ر-پا)اسم- رپېدنه- وګورئ رپ-

رپارے:(ر-پا-رے)اسم- رپ- رپ رپے- لړزه- رپ رپ-

رپاړه:(ر-پا-ړه)اسم- د قميص ترخځ- ترخخه- مغه ټوټه چې قميص ، ارتولو يا پراخولو د پاره لګوي-

رپټ:(ر-پټ)اسم- رپوټ-

رپټ:(ر-پټ)اسم صفت- خربه- ايرابه- په ټوپک، تماچه يا مشين وغېره د پرزو پرله پسې ايرابه-

رپک:(ر-پک)اسم- رپ- رپکے- توک بندي- وړوکے موړه- رف خانه-

رپکے:(رپ-کے)اسم- (۱)رپک- رپ- توک بندي- په دېوال کښې د لوښو اېښودلو موړه- (۲)تخت بام-

رپل:(ر-پل)اسم- ګوليدار ټوپک-

رپند:(ر-پند)اسم صفت- رپېدونکے- رپاند- رپندے-

رپندے:(ر-پن-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)رپ- لړزه- دهشت- ويره ترهه- هيبت- د ويرې له کبله رپندے لګېدنه- (۲)بغندے چې ماشومان پکښې تار واچوي او بغارے ترې وباسي- (۳)د اوربل يو پسول-

رپنے:(ر-پ-نے)اسم صفت- (۱)موخه- بډ- تر خلې پورې- تر څنډ ځلے- تر ژيو- مالامال- (۲)موړ-

رپو:(ر-پو)اسم- رفو- پنځرک- پيوند- د جامو شلېدلے ځاۍ ګنډنه-

رپوټ:(ر-پوټ)اسم- اطلاع- خبر- جمع رپوټونه-

رپوټچي:(ر-پوټ-چي)اسم صفت- مخبر- جاسوس- رپوټي-

رپوټي:(ر-پو-ټي)اسم صفت- وګورئ رپوټچي-

رپول:(ر-پ-ول)مصدر متعدي- خوځول- ښورول- زمبول- خمبول- امتزار ورکول-

رپولے:(ر-پ-وه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رپولي- مؤنث رپولې- وګورئ رپول-

رپون:(ر-پ-ون)حاصل مصدر- وګورئ رپول-

رپونکے:(ر-پ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رپونکي- مؤنث رپونکې- وګورئ رپول-

رپونګ:(ر-پ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ رپول-

رپونه:(ر-پ-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ رپول-

رپهار:(ر-پ-هار)اسم- رپا- خوځېده- ښورېده- امتزار-

زبر "(خ-بنه-ره)"، زورکے "(شل)"، پېش "(نو-کا-ره)"، زېر "(ک-تاب)"، جزم "(شکون)"، "ه" "(ز-ړه)"، "ۀ" "(پو-بې-ده)"

رپهر:(رَ-پَ-هَر)اسم- رَپ- رپارے- رپندے- رپ رپے- دګا- درګا-

رپیده:(ره-پی-ده)اسم- ربیده- رپده- هغه منجیله چې ډوډۍ پخونکے يٖ دَ ډوډۍ پخولو پهٔ وخت استعمالوی- (افغانستان)-

رپېدل:(ر-پې-دل)مصدر لازم- (۱)ښوربېدل- خوځېدل- زمبېدل- خمبېدل- پهٔ اهتزاز راتلل- (۲)غېږېدل-

رپېدلے:(رِ-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رپېدلی- مؤنث رپېدلې- وګورئ رپېدل-

رپېدن:(ر-پې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ رپېدل-

رپېدنګ:(ر-پې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رپېدل-

رپېدنه:(رِ-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رپېدل-

رپېدونکے:(رِ-پې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رپېدونکی- مؤنث رپېدونکې- وګورئ رپېدل-

رپېدهٔ:(ر-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رپېدل-

رپے:(رَ-پے)اسم- (۱)رپهار- رپېدنه- اهتزاز- ښوربېدنه- خوځېدنه- (۲)بېرغ- توغ- جنډه-

رت:(رت)سابقه چې دَ صفت سره ونښلے شي او پهٔ معنٰی کښې زیاتے پیدا کوی-

رُتبوی:(رت-بَ-وی)متعلق فعل- (۱)دَ درجې- دَ منزلت- (۲)دَ مقام- دَ رُتبې- دَ چوکۍ- هغه عدد چې رتبه او درجه ښائی-

رُتبه:(رُت-به)اسم- مؤنث- (۱)درجه- منزلت- (۲)څوکی- چوکۍ- مقام-

رِت پِت:(رِت-پِت)اسم صفت- کېرے کارے- ګاړې وارې- روڅے بڅے- ټوټې ټوټې- شلېدلے شلېدلے- پاره پاره-

رتکیز:(رت-کیز)اسم صفت- ښائسته- ښکلے-

رتمه:(رَ-تهٔ-مه)اسم- واحد- مؤنث- شوره غز- دَ غز یو قسم چې پهٔ ښوره زمکه کښې کیږی- نباتاتی نوم ټمرېکس انډیکا (TAMARIX INDICA)-

رتی:(رَ-تی)اسم- دَ ۱۱ ماترو یو تال- (۲)رت- دَ ۲ ماترو تال- (افغانستان)-

رتیب:(رَ-تیب)اسم- دَ ردیف یو قرأت- ردیف- کتار- تیپ- چپل- کېږ-

رتی لال:(رَ-تی-لال)اسم- دَ جولاګۍ پهٔ رنګ یو زهرناکه حشره-

رتې پتې:(رهٔ-تې-پهٔ-تې)صفت- (۱)چېرې وېرې- چېرې پېرې- ریتې پیتې- تیکه تیکه- تکه تکه- رِیتوړې ریتوړې- (۲)ذرې ذرې- دانې دانې- مېده مېده-

رتی:(ر-تی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)دَ یوې وَنې دَ تخم نوم چې دَ وزن دَ پاره پکاریږی- (۲)لږ شے- ډېر کم شے- کم مقدار- نوکه- (۳)دَ ماسې اتمه برخه وزن-

رټ:(رَټ)اسم صفت- (۱)جوت- ښکاره- واضح- څرګند- (۲)سخت- کلک- (۲)دَ زړا کیفیت-

رټ:(رَټ)اسم- دَ اوښکو بهېدهٔ- غټې غټې اوښکې بهېدنه-

رټ:(رَټ)اسم صفت- شریر- فاسد- مضر-

رټ:(رَټ)اسم صفت- راوتلے- بټ- بزوق- زېږ- دَ سترګو سره ونښلے شي-

رټ:(رَټ)اسم- دَ شرې یا نسکیو دَ ناروغیو هغه حالت چې دانې راښکاره نهٔ شی- (افغانستان)-

رټ:(رَټ)اسم- (۱)دَ نفی- دَ تردید- دَ رد- قطعی- سنغ- (۲)تکړه

رِټ بی:(رِټ-بی)اسم- سخا بوئ-

رټ پټ:(رُټ-پټ)اسم- صفا- سکټ- ښکاره- څرګند-

رټتیا:(رټ-تیا)اسم- رټوالے- کلک والے- سخت والے- سنغ والے-

رټ رټ:(رټ-رټ)اسم- پهٔ غټو غټو سترګو- رډ رډ-

رُټ رُټ:(رُټ-رُټ)اسم صوت- دَ ژړا اواز-

رټ سترګے:(رَټ-سترِ-ګے)اسم صفت- بټې بټې سترګې لرونکے-

رټل:(ر-ټل)مصدر متعدی- (۱)ترټل- غندل- پهٔ خبرو سره تهدیدول- (۲)شړل- خفه کول-

رټل کوټل:(رَ-ټل-کو-ټل)مصدر- خورل- رټل- کورېدل- دَرکه کول- چا ته ګواښ او قهر کول- غوږ راکښل- بدرد ونیل- سپورې ستغې ونیل- ښېرې کول- غندل- زیږې کول- چا ته ګورېدل-

رټلے:(رَ-ټهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رټلی- مؤنث رټلې- وګورئ رټل-

رټ مټ:(رټ-مټ)اسم- پهٔ څرګنده- رډ بډ- پهٔ سپینه- پهٔ ښکاره- پهٔ زغزده- صریحاً-

رټن:(ر-ټن)حاصل مصدر- وګورئ رټل -

رټن:(رَ-ټن)اسم صفت- خول خول- ټکی ټکی- خال خال- خاپ خاپ- چکی چکی- داغدار- څپر څپر-

رټنګ:(رَ-ټنګ)حاصل مصدر- وګورئ رټل-

رټنه:(ر-ټهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رټل-

رټنه ترټنه:(رَ-ټهٔ-نه-ترِ-ټهٔ-نه)اسم حاصل مصدر- وګورئ رټل-

رټنه کوټنه:(رَ-ټهٔ-نه-کو-ټهٔ-نه)اسم حاصل مصدر- زورنه- دپکه کونه- ویرونه- سترګې راوبستنه-

رټوالے:(رَټ-وا-لے)اسم- رډ بډوالے- صراحت- څرګندوالے-

رټول:(رَ-ټ-وَل)مصدر متعدی- رډول- سترګې کلکول- سترګې سپینول- پهٔ سترګو کښې ننوتل-

رټولے:(رِ-ټ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رټولی- مؤنث رټولې- وګورئ رټول-

رټون:(رَ-ټ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ رټول-

رټونکے:(رِ-ټ-وون-کے)اسم فاعل- جمع رټونکی- مؤنث رټونکې- وګورئ رټول-

رټونګ:(رَ-ټ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ رټول-

رټونه:(رِ-ټ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رټول-

رټه:(ر-ټه)اسم- واحد- مؤنث- نيغه- سپينه- ښکاره- جوته- صريحه- سخته- جمع رټې-

رټې پېټې:(ر-ټې-پ-ټې)اسم- ردي بدې- سټغې سپورې- بده وينا- سپکه وينا-

رټېدل:(ر-ټې-دل)مصدر لازم- رټېدل- سترګې کلکېدل- سترګې سپينېدل- خرې کېدل- سرټمبه کېدل- ضد کول- خپل کول-

رټېدلے:(ر-ټې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رټېدلي- مؤنث رټېدلې- وګورئ رټېدل-

رټېدن:(ر-ټې-دن)حاصل مصدر- وګورئ رټېدل-

رټېدنګ:(ر-ټې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ رټېدل-

رټېدنه:(ر-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رټېدل-

رټېدونکے:(ر-ټې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رټېدونکي- مؤنث رټېدونکې- وګورئ رټېدل-

رټېدهٔ:(ر-ټې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رټېدل-

رټې:(ر-ټې)اسم- واحد جمع- مؤنث- شړې-

رټې:(ر-ټې)اسم- واحد جمع- مؤنث- يو قسم واښهٔ- (افغانستان)-

رجال:(ر-جال)اسم- جمع- سړي- وګړي- اشخاص- دَ رُجل جمع-

رجال الغيب:(ر-جا-لل-غيب)اسم- پيريان- جنات- غيب عالم-

رجا:(ر-جا)اسم- اسره- طمع- تمه- اُميد-

رجب:(ر-جب)اسم- بزرګه- دَ خدایٔ تعالیٰ مياشت- بزرګه مياشت- لويه مياشت- دَ هجري قمري کال اوومه مياشت-

رُجحان:(رُ-جحان)اسم- (۱)بـانـدې والے- بزرګ والے- لـوړوالے- ترجيح- برتري- (۲)توجه-

رجړے:(رج-ړے)اسم- واحد- مذکر- خهنکه- تباه لکه- خُټکني-

رجړومه:(رج-ړو-مه)اسم- واحد- مؤنث- لجړومه- رنجونې- رجړومه- رنجومه- هغه وړه کڅوړه چې رانجهٔ پکښې ساتلے شي-

رجز:(ر-جز)اسم- ويارنه- هغه شعرونه چې پهٔ جنګ کښې وئيلے شي-

رجس:(ر-جس)اسم- (۱)نـاولـتيـا- پـليتي- ګـندګي- (۲) ګـنـاه- وبـال- (م- عربي)-

رجسټر:(ر-جس-ټر)اسم- يادداشت- روزنامچه- دَ حاضري کتاب- جمع رجسټرونه-

رجسټري:(ر-جس-ټهٔ-ري)اسم- دَ رجسټر سره متعلق-

رجعت:(رج-عت)اسم- راستنېدنه- راګرځېدنه-

رجعت پسند:(رج-عت-پ-سند)اسم صفت- رجعت خوښونکے- وګورئ رجعت-

رجعت پسندي:(رج-عت-پ-سن-دي)اسم- مؤنث- دَ رجعت پسند جوړېدو حالت- (م- عربي)-

رجل:(ر-جُل)اسم- واحد- مذکر- سړے- جمع رجال- (م- عربي)-

رجم:(ر-جم)اسم- سنګسارونه- پهٔ تيرو يا ډبرو وهنه- (۲)کنځل کونه- ترټنه-

رجمټ:(رج-مټ)اسم- پهٔ ۵۳۲ غوځيانو مشتمله يوه کمپني چې پهٔ يو بټالين کښې درې شاملې وي- (م- انګريزي)-

رجوع:(ر-جوع)اسم- (۱)مخ راګرځونه- بېرته راتلنه- بېرته راستنېدنه- مخه- (۲)علاقه- (۳)دَ رجعي طلاق فسخه کونه- (۴)هغه صنعت چې شاعر خپل تېر شوے کلام باطل کړي او بل مطلب ته دَ کلام دَ ښهٔ والي دَ پاره لاړ شي-

رجه:(ر-جه)اسم- (۱)هغه تار يا مزے چې خټګر يا ترکاڼ پر نښې او خطونه اچوي- (۲)نښه- (۳)دود- دستور- رواج-

رخه:(ر-خه)اسم- لاره- چاره- سړک- لار- واټ- (افغانستان)-

رچ:(رچ)اسم- کډه- دَ کور سامان-

رچ:(رچ)اسم- (۱)دَ جولاګانو دَ کړي ړومنځ- (۲)عيب- ضرر- نقصان- زيان- (۳)دَ خرادي آله- (۴)ډبو- (۵)شاپېرۍ- پېرۍ- (۶)دَ کبانو يا ماهيانو دَ نيولو جال (تور)-

رچ:(رچ)اسم- (۱)چـه- مينـه- خـوښه- رضـا- (۲)حرص- تـلـوسه- شوق- (۳)آرزو- ارمان- (۴)سُوده شوے غوښے- هغه غوښے چې دَ ډېرو ګرځېدو لهٔ کبله يې دَ پښو سمونه سوليدلي وي- (افغانستان)-

رچ پچ:(رچ-پچ)اسم صفت- ريچې ريچې- بسمې بسمې- ذرې ذرې-

رچکے:(رچ-کے)اسم- څرخ- څرخنے- هغه تار يا رسۍ چې غُنډاري شوي وي- سمندخ شوې وړې يا تار- (افغانستان)-

رچکانے:(رچ-کا-نے)اسم- دَ خرادي دَ آلې تيره- دَ خرادي دَ آلې کانړے- (افغانستان)-

رچګان:(رچ-ګان)اسم- توکرے- خراد-

رچنے:(رچه-نے)اسم- خراد- هغه آله يا سړے چې خرادي کوي- (افغانستان)-

رچه:(ر-چه)اسم- واحد- مؤنث- ريچه- دَ سپږو يو ډېر وړوکے قسم چې دَ ګندګۍ لهٔ وجې پهٔ سر کښې پيدا کيږي- جمع رچې-

رچه:(رهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- پلوشه- نوکے- وړانګه- چوک- ذره- هغه وړه ذره چې دَ نمر پهٔ شغلو کښې ليدے شي-

رچې رچې:(ر-چې-ر-چې)اسم صفت- ريچې ريچې- بسمې بسمې- ذره ذره-

رځ:(رځ)اسم صفت- کجے- هغه سړے چې يو پښه يې کږه وي او ګډ ګډ ګرځي يا پهٔ ځان پسې پښه راکاږي-

رڅا:(ر-څا)اسم- سوره-

رښکښل:(رښ-کښل)مصدر- رښے کښل- رښکښل- ښکول- ښخول- پهٔ زمکه راکښل او کشول- (افغانستان)-

رښه:(ر-ښه)اسم- واحد- مؤنث- پره- ژغورنه- ځان ساتنه- (افغانستان)-

رښکښل:(ر-ښې-کښل)مصدر- رښکښل- ښکول- کشول- پهٔ راکښلو او کشولو سره دَ يو شي وړل- (افغانستان)-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، زبر "(ک-تاب)، پېش "(نو-کا-ره)، جزم "(شکوڼ)، ٓ(ز-ړه)، ٔ(پو-ښې-دهٔ)

رڅېکښلے:(رَ-څې-کښَۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رڅېکښلي- مؤنث رڅېکښلې- وګورئ رڅېکښل-

رڅېکښن:(رَ-څې-کښن)حاصل مصدر- وګورئ رڅېکښل-

رڅېکښنګ:(رَ-څې-کښنګ)حاصل مصدر- وګورئ رڅېکښل-

رڅېکښنه:(رَ-څې-کښَۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رڅېکښل-

رڅېکښونکے:(رَ-څې-کښون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رڅېکښونکي- مؤنث رڅېکښونکې- وګورئ رڅېکښل-

رحلت:(رح-لَت)اسم- (۱)تلنه- تګ- لېږدېدنه- کوچېدنه- (۲)مرګ- وفات- لۀ دنيا نه تلنه- (کول/کېدل مصدرونه)-

رحم:(رَ-حَم)اسم- زړۀ سوے- زړۀ خوږېدنه- لَوَر- زړۀ خوږونه- مهرباني- (م- عربي)-

رحم:(رَ-حم)اسم- زيلان- زيلانځ- توملنه- دَ ښځې پۀ خېټه کښې هغه ځاے چې اولاد پکښې وي- (م- عربي)-

رحمان:(رح-مان)اسم صفت- (۱)رحمٰن- بخښونکے- دَ الله تعالىٰ صفتي نوم- (م- عربي)- (۲)دَ پښتو ژبې يو مشهور صوفي شاعر-

رحماني:(رح-ما-ني)اسم- دَ رحمان سره متعلق- رحمان ته منسوب- (م- عربي)-

رحمت:(رح-مت)اسم- (۱)بخښنه- (۲)لورينه- (۳)مهرباني- فضل- رحم- (م- عربي)-

رحم درخواست:(رَ-حم-در-خواست)اسم- هغه درخواست چې دَ سزا دَ معاف کولو دَ پاره صدر ته وړاندې کولے شي-

رحمېدلے:(رَح-مې-دَۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رحمېدلي- مؤنث رحمېدلې- وګورئ رحمېدل-

رحمېدن:(رَح-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ رحمېدل-

رحمېدنګ:(رَح-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ رحمېدل-

رحمېدنه:(رَح-مې-دَۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رحمېدل-

رحمېدونکے:(رَح-مې-دون-کے)اسم فاعل- جمع رحمېدونکي- مؤنث رحمېدونکې- وګورئ رحمېدل-

رحمېدۀ:(رح-مې-دَۀ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رحمېدل-

رحيل:(رَ-حيل)اسم- کوچ- لېږد- يون-

رحيم:(رَ-حيم)اسم صفت- رحم کونکے- مهربان- بخښونکے- دَ الله تعالىٰ يو صفتي نوم-

رخ:(رُخ)اسم- (۱)مخ- څېره- شکل- (۲)واګې- دَ آس جلو- (۳)پلو- لوري- خوا- طرف- (۴)دَ شطرنج پۀ لوبه کښې هغه دانه چې دَ تختې پۀ کُنج کښې اېښودل کيږي- (۵)سيمرغ- دَ يو افسانوي مارغۀ نوم- (۶)سمې- برابرې-

رخ:(رَخ)اسم- چرې- ربنه- خط- کرښه- هغه کرښه چې دَ ټوپک دَ شپېلۍ پۀ دننې برخه کښې کېندل شوې وي-

رخ:(رخ)اسم- واحد- مذکر- دَ ځلېر سورے- دَ تلېر سورے- دَ ډنډ موري- دَ حوض موري- دَ جووړ موري- هغۀ سورے چې لۀ ډنډ څخه ترې اُبۀ وځي-

رخ:(رخ)اسم صفت- رخه ناک- رخن- حسود- حاسد-

رُخ:(رُخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)وَرخ- هغه جوړه کرې لاره چې پټي ته پرې اُبۀ وَرکولے شي- (۲)دَ تاش دَ لوبې دَ يوې مرحلې نامه-

رُخام:(رُ-خام)اسم- سپينه او نرمه ډبره- (افغانستان)-

رخپټه:(رخ-پ-ټه)اسم- يو ډول دَ غرۀ بوټے چې پوخ او اُوم خوړلے شي-

رخپين:(رخ-پين)اسم- مذکر- تروکے- رخپين- کوړتوبه- دَ خټکېدلو شوملو ټينګه ماده چې ننګولي، دَ ستونې درد او ګرمۍ دَ پاره استعمالولے شي-

رخپين:(رخ-پين)اسم- مذکر- وګورئ رخپين-

رخت:(رَخت)اسم- مذکر- (۱)څرمن- پخه څرمن- (۲)سامان- ټوکے- ټوکر- ټوټه- لباس- جامې- کالي-

رخت:(رخت)اسم- پال- سپاره- سپاره- سسپور-

رخت باب:(رخت-باب)اسم- مذکر- دَ رخت- دَ ټوکرانو- په رخت يا ټوکرانو مربوط-

رختخواب:(رَخت-خاب)اسم- مذکر- (۱)چادرشو- بوغبند- بوغبندپېچ- (۲)هغه بړستن، نالي يا بالښت چې پۀ بوغبند کښې پېچلي وي-

رخچينه:(رخ-چي-نه)اسم- مؤنث- (۱)يو ډول خولۍ چې پخوا به ښځو په سرکوله- (۲)هغه ټوکر چې پۀ آس باندې دَ خولو جذب کولو دَ پاره تړلے کيږي-

رخدار:(رخ-دار)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- رَخ لرونکے- رخې رخې- هغه شے چې رخې (چرې) لري-

رخدار ټوپک:(رخ-دار-ټو-پک)اسم- واحد- مذکر- دَ ټوپک يو قسم- هغه ټوپک چې شپېلۍ کښې يې پينځۀ رخونه وي- رخدور-

رخدور:(رخ-دور)اسم- واحد- مذکر- وګورئ رخدار ټوپک-

رخړل:(رخ-ړل)مصدر- ريخل- ريخ وهل- بيېدل- بهېدل-

رخړن:(رخ-ړن)حاصل مصدر- وګورئ رخړل-

رخړنه:(رخ-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رخړل-

رخړونکے:(رخ-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رخړونکي- مؤنث رخړونکې- وګورئ رخړل-

رخړې:(رخ-ړې)اسم صفت- بهېدلے-

رخس:(رخس)اسم- مذکر- رقص- نڅا- ګډا- ډانس- (عاميانه قرأت)-

رُخسار:(رخ-سار)اسم- مذکر- غومبوري- اننګے- باړخو- بارخو- نغور- سرۀ زوټي- جمع رُخسارونه- (م- فارسي)-

رخسول:(رخ-س-وَل)مصدر- رقصول- ګډول- نڅول- (عاميانه قرأت)-

رخسولے:(رخ-س-وَۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رخسولي- مؤنث رخسولې- وګورئ رخسول-

رخسون:(رخ-س-ون)حاصل مصدر- وګورئ رخسول-

رخسونګ:(رخ-س-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ رخسول-

رخسونه:(رخ-س-وڼه-نه)حاصل مصدر- وګورئ رخسول-

رخسونکے:(رخ-س-وون-کے)اسم فاعل- جمع رخسونکی- مؤنث رخسونکې- وګورئ رخسول-

رخشان:(رخ-شان)اسم صفت- پرقېدونکے- روښانه- ځلېدونکے- (م- فارسی)-

رخښت:(ر-خښت)اسم- چړېدلے- رخړېدلے- رېخېدلے- د نسه بېېدلے- بهېدلے- هغه ځاروے چې زړېخیږي-

رخصت:(رخ-صت)اسم- (۱)اجازت- رسخت- اجازه- (۲)دستور-

رخصتول:(رخ-ص-ت-ول)مصدر- رسختول- اجازه ورکول- اجازت ورکول- (۲)شړل- له کاره ایستل-

رخصتون:(رخ-ص-ت-ون)حاصل مصدر- وګورئ رخصتول-

رخصتونکے:(رخ-ص-ت-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رخصتونکی- مؤنث رخصتونکې- وګورئ رخصتول-

رخصتونګ:(رخ-ص-ت-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ رخصتول-

رخصتونه:(رخ-ص-ت-وڼه-نه)حاصل مصدر- وګورئ رخصتول-

رخصتی:(رخ-ص-تی)اسم- مؤنث- هغه رسم چې د جینۍ د واده په وخت جینۍ خپلو کېدونکي خپلوانو ته سپارلے شي- ږولۍ ورکونه-

رخصتی:(رخ-ص-تی)اسم- (۱)د ازادۍ ورځ- د تعطیل ورځ- د کار نه کولو ورځ- (۲)رخصت- رسخت-

رخصتېدل:(رخ-ص-تې-دل)مصدر- رسختېدل- رسخت کېدل- رخصت کېدل- (۲)شړل- له کاره وتل-

رخصتېدلے:(رخ-ص-تې-دڼه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رخصتېدلی- مؤنث رخصتېدلې- وګورئ رخصتېدل-

رخصتېدن:(رخ-ص-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ رخصتېدل-

رخصتېدونکے:(رخ-ص-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رخصتېدونکی- مؤنث رخصتېدونکې- وګورئ رخصتېدل-

رخصتېدنګ:(رخ-ص-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ رخصتېدل-

رخصتېدنه:(رخ-ص-تې-دڼه-نه)حاصل مصدر- وګورئ رخصتېدل-

رخصتېده:(رخ-ص-تې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ رخصتېدل-

رحل:(ر-حل)اسم- واحد- مذکر- رحې رنېل- د قرآن شریف د تلاوت په وخت پکارونکې د لرګی هغه آله چې قرآن شریف پکښې په ادب سره پروت وي-

رخن:(ر-خن)اسم صفت- واحد- مذکر- رخه ناک- حاسد- کینه ناک- حسود- حسد کونکے- رخندوکے-

رخن:(ر-خن)اسم- ابره- خاصل-

رخن:(ر-خن)اسم صفت- واحد- مذکر- ریخن- په آسهال مبتلا- هغه سړے چې دستونه او املونه پرې لګېدلی وي-

رخندوکے:(ره-خن-دو-کے)اسم صفت- وګورئ رخن ۱-

رخنه:(رخ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)درز- چاود- سورے- (۲)ګرت- (۳)خونه-

رخنه:(رخ-نه)اسم- واحد- مؤنث- عیب- فساد- (م- فارسی)-

رخنه ګر:(رخ-نه-ګر)اسم صفت- مذکر- فسادی- عیبی-

رخه:(ر-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ رخ- (۲)رجه- نقشه- خط اچونه- جمع رخې-

رخه:(ر-خه)اسم- واحد- مؤنث- حسد- بدخواهی- کست- قصد- غوږ- اروږ-

رخه:(ر-خه)اسم- واحد- مؤنث- د زړه سوے- ترحم- جمع رخې-

رخیل:(رخه-یل)مصدر متعدی- سر خرول- خریل- خرېیل- کلول- کټېیل-

رخے:(ر-خے)اسم صفت- (۱)دښمن- مخالف- وزغونے- سوزېدونکے- مېرځمن- رخه ناک- رخن- حاسد- حسود- (۲)د ځلېر سورے- د پنې موری-

رد:(رد)اسم- واحد- مذکر- (۱)طرف- لورے- خوا- پلو- غاړه- (۲)تېرېدنه- تلنه-

رد:(رد)اسم- مخې ورګرځونه- ردونه- تمبونه- مستردونه- خوابونه- تردید- ورګرځونه- ورجوابونه- نه قبلونه- نه منله- انکار- باطلونه- پرېښونه-

ردبېے:(رد-ب-بے)اسم- د اسمان کټ- د اوو ستورو جومېک-

ردغ:(ر-دغ/ردغ)اسم صفت- رغ- کسے- چپے- چپ لاسے-

ردوبد:(رد-و-بد)اسم- (۱)ګډې وډې- سپکې سپورې- ردې بدې- (۲)کنځلې- بکنځلې- زیاړې-

ردوبدل:(ر-دو-ب-دل)اسم- (۱)الاندې باندې- تېرزبېر- نه مخامخ کېدنه- (۲)عوض و معاوضه- بدلونه- تبادله- یو له بل سره بدلونه-

ردول:(ر-د-ول)مصدر متعدی- (۱)رد کول- مستردول- تمبول- ورګرځول- تردیدول- (۲)نفی کول-

ردون:(ر-د-ون)حاصل مصدر- وګورئ ردول-

ردونکے:(ر-د-وون-کے)اسم فاعل- جمع ردونکی- مؤنث ردونکې- وګورئ ردول-

ردونګ:(ر-د-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ردول-

ردونه:(ر-د-وڼه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ردول-

رده:(ر-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پخڅه- موره- بنیاد- (۲)لاره- لاړ- قطار- قط-

ردی:(ر-دی)اسم صفت- رد شوے- باطل- منسوخ- له کاره وتلے- بې کاره- له بنې وتلے-

ردیف:(ر-دیف)اسم- واحد- مذکر- (۱)کتېر- قطار- ځیره- (۲)پسی شا- پشی شا- ترڅنې- (۳)غبرګ سواره- دوه سواره- (۴)د غزل، قصیدې وغیره هغه توري چې د قافیې نه پس بیا بیا راځي- جمع ردیفونه-

ردېدل:(ر-دې-دل)مصدر لازم- (۱)جوابېدل- مستردېدل- خوابېدل- (۲)مرتدېدل- مرتد کېدل- له دینه ګرځېدل- (۳)نفی کېدل- باطلېدل-

منسوخېدل- لهٔ ښې وتل- لهٔ کاره وتل-

ردېدلے:(رَ-دې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ردېدلی- مؤنث ردېدلې- وګورئ ردېدل-

ردېدن:(رَ-دې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ردېدل-

ردېدنګ:(رَ-دې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ردېدل-

ردېدنه:(رَ-دې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ردېدل-

ردېدونکے:(رَ-دې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ردېدونکی- مؤنث ردېدونکې- وګورئ ردېدل-

ردېدهٔ:(رَ-دې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ردېدل-

رڼ:(رَڼ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وَچ سترګے- سپین سترګے- کلک سترګے- (۲)رڼ- راوتلے- بټ سترګے- (۳)ښکاره- څرګند- (۴)سرټمبه- سرتمبه- پهٔ خپله خبره ټینګ- سرکش- ضدی- خیر-

رڼبڼ:(رَڼ-بَڼ)اسم صفت- ښکاره- جوت- څرګند- صریح- واضح- سپین-

رڼ پهٔ رڼه:(رَڼ-پهٔ-رَ-ڼه)متعلق فعل- مخ پهٔ مخ- مخامخ- نېغ- ښکاره- رڼبڼ- جوت- څرګند- (افغانستان)-

رڼسترګے:(رَڼ-سْتر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټاغ سترګے- بټ سترګے- بوګ سترګے-

رڼول:(رَ-ڼَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)ښکاره کول- جوتول- (۲)نیغول- شخول- سترګې سپینول-

رڼولے:(رَ-ڼَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رڼولی- مؤنث رڼولې- وګورئ رڼول-

رڼون:(رَ-ڼَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رڼول-

رڼونکے:(رَ-ڼَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع رڼونکی- مؤنث رڼونکې- وګورئ رڼول-

رڼونګ:(رَ-ڼَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رڼول-

رڼونه:(رَ-ڼَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رڼول-

رڼېدل:(رَ-ڼې-دَل)مصدرِ لازم- رڼېدل- خرې کېدل- ښې کلکول- ښې خرېبل- خره ښه کېدل-

رڼېدلے:(رَ-ڼې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رڼېدلی- مؤنث رڼېدلې- وګورئ رڼېدل-

رڼېدن:(رَ-ڼې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رڼېدل-

رڼېدنګ:(رَ-ڼې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رڼېدل-

رڼېدنه:(رَ-ڼې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رڼېدل-

رڼېدونکے:(رَ-ڼې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع رڼېدونکی- مؤنث رڼېدونکې- وګورئ رڼېدل-

رڼېدهٔ:(رَ-ڼې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رڼېدل-

رڼۍ:(رَ-ڼۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مرړی- مروړه- مروړی- دَ ټوپک لته کش- هغه مزے چې دَ ټوپک شپلۍ پرې پاکیږي- (افغانستان)-

رڼے:(رَ-ڼے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټاغ- ږغ- ټاغې ټاغې سترګې لرونکے- بټ سترګے- بوګ سترګے- جمع رڼیان-

رڼے:(رَ-ڼے)اسم- واحد- مذکر- ګیګړ- رڼدے- دَ رڼدی ګل- یو قسم ګل- جمع رڼی-

رذالت:(رَ-ذا-لَت)اسم- واحد- مذکر- پَستی- پستیا- کچوتی- کچګی- ناکسی- سپیتانه- (م- عربی)-

رذاله:(رَ-ذا-له)اسم صفت- کمینه- پاسو- سپک- رذیل- (م- عربی)-

رذیل:(رَ-ذیل)اسم صفت- پست- کچه- کچوت- فاسد- سپک- ناکس- رذاله- (م- عربی)-

رذیلانه:(رَ-ذی-لا-نه)اسم- دَ رذالت- دَ رذیلتوب- دَ رزالت پهٔ طور-

رذیلتوب:(رَ-ذیل-توب)اسم- دَ رذیل کارکردګی- بدذاتی- ورانے-

رړی:(رَ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- شنړی- دَ بکیانې بچې- دَ بکیانې یا شنړی دانې- پچې-

رز:(رز)اسم- (۱)خیلی- تاک- دَ انګور وُنه- مېلوه- (۲)ګنډېر- (۳)بڼ- باغ- (م- فارسی)-

رزاق:(رَ-زاق/رَز-زاق)اسم صفت- مذکر- (۱)دَ الله تعالی یو صفتی نوم- (۲)روزی ورکونکے- رازق- روزی رسان- (م- عربی)-

رزق:(رِزق/رِ-زَق)اسم- روزی- روټی- خورمه- خواړهٔ- رزی- شومه- (م- عربی)-

رزق روزی:(رِ-زق-رو-زی)اسم مرکب- نان نفقه- روزی- رزق-

رزم:(رَ-زم)اسم- واحد- مذکر- جنګ- جګړه- شخره- جیګاړ-

رزمته:(رَز-مَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شومه- ورځنی خواړهٔ- ارګانه- ورځنی جیره- دَ یوهٔ وخت روټې- (۲)بسنه- بسیا- دومره تنخواه چې دَ یوې کورنی دَ پاره بس وی-

رزمی:(رَز-مي)اسم- دَ جنګ- دَ حماسې- دَ جګړې- ایپیک-

رزمیه:(رَز-می-یه)اسم صفت- دَ رزم سره متعلق- چې پکښې دَ جنګ بیان وی-

رژ:(رژ)اسم- ریژ- دَ لېونی سپی ناروغی- دَ لیونی سپی دَ داړلو نه پېدا کېدونکې بیماری- (افغانستان)-

رژند:(رَ-ژَند)اسم صفت- مذکر- (۱)رژېدونکے- تونېدونکے- رېژېدونکے- (۲)کولېدونکے- هغه منجمد شے چې مېده کیږی یا رژیږی-

رژول:(رَ-ژَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)رېژول- دوړول- (۲)کولول- مېده مېده کول-

رژولے:(رَ-ژَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع رژولی- مؤنث رژولې- وګورئ رژول-

رژون:(رَ-ژَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رژول-

رژونکے:(رَ-ژَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع رژونکی- مؤنث رژونکې- وګورئ رژول-

رژونګ:(رَ-ژُ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رژول-
رژونه:(رِ-ژُ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رژول-
رژېدل:(رَ-ژې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)تـونـېـدل- رېژېـدل- رالـوېـدل- تـلـېـدل-
(۲)مېده کېدل- دوړېدل-
رژېدلے:(رِ-ژې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع رژېدلی- مؤنث رژېدلې- وګورئ رژېدل-
رژېدن:(رَ-ژې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رژېدل-
رژېدنګ:(رَ-ژې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رژېدل-
رژېدنه:(رِ-ژې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رژېدل-
رژېدونکے:(رِ-ژې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع رژېدونکی- مؤنث رژېدونکې- وګورئ رژېدل-
رژېدۀ:(رَ-ژې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رژېدل-
رس:(رَس)اسم- (۱)روزی- خوارۀ- آزوغه- آذوقه- (۲)مرسته- (۲)رښ- يو قسمِ يونانی دارو-
رس:(رَس)اسم- جوهر- څوز- اُرغ- عرق- نچوړ-
رس:(رَس)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ګېډو- خېټور- ګېډور- نس پرس- هغه څوک چې تر حده زيات خوراک کوی-
رس:(رَس)اسمِ- واحد/جمع- مؤنث- يو قسم خاوره چې کۀ اُبو سره يو ځاۓ شي نو يوه نښلېدونکې خمبيره ترې حاصلېږی- (افغانستان)-
رسا:(رِ-سا)اسمِ صفت- (۱)بالغ- رسېدلے- (۲)لوړ- (۲)سم- درست- سيخ- نېغ- پۀ نښه-
رسالت:(رِ-سا-لَت)اسم- خبر رسونه- پېغام رسونه- اطلاع ورکونه- پېغمبری- استاځی توب- (عربی)-
رسالدار:(رِ-سال-دار)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ رسالې افسر- جمع رسالداران-
رساله:(رِ-سا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړه مجموعه- وړوکے کتاب- (۲)ليک- مکتوب- (۲)دَ سورو يوه پله يا يوه قطعه- جمع رسالې-
رساليندے:(رِ-سا-لين-ذے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ليندی وېشتونکے- ليندور- بۀ غشے وېشتونکے- نښه ويشتونکے- هغه څوک چې ښۀ نښه ولی-
رسام:(رَ-سام)اسم- واحد- مذکر- انځورګر- څېره کښونکے- څېره کښ- رسم کښونکے- رسم کونکے- رسم اېستونکے- دَ رسم ماهر- نقش کونکے- کښيديار- کښيدګر- (عربی)-
رسامی:(رَ-سا-می)اسم- کشيده کاری- انځورګری- نقاشی- کښيدياری- (عربی)-
رستګاری:(رست-ګا-ری)اسم- خلاصے موندنه- نجات موندنه- ژغورنه-
رستم:(رُس-تَم)اسم- پهلوان- دَ رستم دَ نامې پۀ مناسبت-
رستمی:(رُس-تَه-می)اسم- مؤنث- بهادری- تکړه توب-
رستوران:(رِس-تو-ران)اسم- واحد- مذکر- رېسټورنټ- هغه ځاۓ چې خوراک څښاک پکښې خوړلے شی- (افغانستان)، (م- انګريزی)-
رسته:(رَس-ته)اسم- واحد- مؤنث- رده- کيله- قطار- صف- کېږ- ځيره- لېن-
رسد:(رَ-سد)اسم- (۱)برخه- حصه- ونډه- قسمت- پېړے- (۲)دَ خوراک دَ څيزونو رسېدنه- خرڅه- (۲)دَ لو وخت- دَ حاصل وخت- دَ ابرې وخت- (۴)کومک- امداد-
رسليک:(رَس-ليک)اسم- رسيد- پاروخطے- سَند- تمسک- (افغانستان)-
رسم:(رِ-سَم)اسم- واحد- مذکر- دود- رواج- دستور- عرف- عادت- عنعنه- قاعده- جمع رسمونه-
رسم:(رَ-سِم)اسم- (۱)انځور- تصوير- دَ يو شی صورت- (۲)پۀ هندسه ئ قواعدو سره دَ تصويرونو ايجادونه-
رسم:(رَ-سِم)اسم- دَ بوسو نه پاکه شوې رشه- هغه پاکه غله چې دَ بوسو نه وتلې وی- هغه درمند چې راش شوے وی-
رسم الخط:(رس-مُل-خَط)اسم- ليک دود- معياری ليک- دَ يوې ژبې دَ ليکلو طريقه-
رسمول:(رَس-مَ-وَل)مصدر- رسم اېستل- رسم کښل- انځورول- څېره يا منظر کښل-
رسمون:(رَس-مَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رسمول-
رسمونکے:(رَس-مَ-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع رسمونکی- مؤنث رسمونکې- وګورئ رسمول-
رسمونګ:(رَس-مَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رسمول-
رسمونه:(رِس-مَ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رسمول-
رسمونے:(رِس-مو-نے)اسم- کونډې مال- پالمال- پايخور- دَ غنمو هغه کونډې چې دَ رشې پاکېدو پۀ وخت کښې لواړ پاتې شی-
رسمی:(رَس-می)اسم- (۱)دَ رسم سره متعلق- پۀ رواجی ډول- (۲)حکومتی- دولتی- سرکاری- پۀ دولتی چارو مربوط- دَ غېر رسمی مقابل- (افغانستان)-
رسميت:(رس-مي-يَت)اسم- رسمی جنبه لرنه- هغه څۀ چې رسمی اړخ يا جنبه لری- (افغانستان)-
رسمېدل:(رس-مې-دَل)مصدر- انځورېدل- تصويرېدل- دَ يو شی صورت يا څېره کښل کېدل-
رسمېدلے:(رِس-مې-دۀ-لے)اسمِ مفعول- جمع رسمېدلی- مؤنث رسمېدلې- وګورئ رسمېدل-
رسمېدن:(رس-مې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رسمېدل-
رسمېدنګ:(رس-مې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رسمېدل-
رسمېدنه:(رِس-مې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رسمېدل-
رسمېدونکے:(رِس-مې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع رسمېدونکی- مؤنث رسمېدونکې- وګورئ رسمېدل-

رسمېدهٔ:(ر-س-مې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رسمېدل-

رسند:(رَ-سَند)اسم- (۱)دَ ناوې دَ آس مخصوص جلو- (۲)هغه رنګدار دسمال چې خسرګنئ ئ دَ زوم دَ آس دَ غاړې دَ پاره ورکوي- (افغانستان)-

رسوا:(رس-وا)اسم صفت- (۱)بدنام- پګړی- اشوا- بې آبرو- لوڅ- شرمنده- خوار- ذليل- (۲)معلوم- څرګند- ښکاره- جوت-

رسوائي:(رس-وا-ئي)اسم- بدنامي- بې عزتي- موزري- ذلت- پګړي کېدهٔ- اشوائينه- لوڅېدهٔ- (۲)څرګندېدنه- افشا کېدنه- جوتېدنه-

رسوب:(رَ-سوب)اسم- خړه- خړوبے- کونوبے- خټېږل-

رسوبي:(رَ-سو-بي)اسم- دَ رسوب- پهٔ رسوب موبوط- دَ خټېږل- پهٔ خټېږل مربوط- دَ کونوبي- (افغانستان)-

رسوخ:(رَ-سوخ)اسم- (۱)مخ روښے- اعتبار- عزت- منلتيا- (۲)ثابت- ټينګ- محکم- استوار- مضبوط-

رسول:(رَ-سول)اسم صفت- پېغمبر- دَ خدائ استاځے- (۲)استاځے- قاصد- هغه څوک چې دَ خدائ پېغام مخلوق ته رسوي- (م- عربي)-

رسول:(رَ-س-ول)مصدر- (۱)اوړل- سپارل- (۲)تر سره کول- تر اخره کول- پائ ته رسول- (۳)لوړول- جګول- لوړ مقام ته پورته کول-

رسولی:(ر-سو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- رسوړي- هغه غوټه چې دَ لاسونو يا پښو پهٔ ګتو کښې يا پهٔ ګېډه کښې راځيږي-

رسوم:(رَ-سوم)اسم- دَ رسم جمع- دودونه- رواجونه- عادتونه-

رسون:(رَ-س-ون)حاصل مصدر- وګورئ رسول-

رسونګ:(رَ-س-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ رسول-

رسونه:(رَ-س-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رسول-

رسونکے:(رَ-س-ون-کے)اسم فاعل- جمع رسونکي- مؤنث رسونکې- وګورئ رسول-

رسه:(رَ-سه)اسم- غټ پړے چې څاروي پرې تړلے شي- رسي-

رسيد:(رَ-سيد)اسم- واحد- مذکر- سند- رسليک- چېټۍ- پاروخط- هغه ليکنه چې څوک ئ دَ پېسو، جائيداد يا بل څهٔ شي دَ تر لاسه کولو وروستو بل چا ته ورکوي- جمع رسيدونه-

رسينده:(رَ-سين-ده)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- رسېدونکے- محوريز- دَ خلګو دَ پربکړې ښتن- دَ سر سړے- سپين روبے- بارسوخه- معتبر- هغه څوک چې هر چا ته ئ واک رسي-

رسېدل:(ر-سې-دل)مصدر- (۱)تر سره کېدل- پوره کېدل- بشپړېدل- (۲)پخېدل- (۳)خوانېدل- بالغېدل- ودې ته رسېدل- (۴)ورسپارل کېدل-

رسېدلے:(ر-سې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رسېدلي- مؤنث رسېدلې- وګورئ رسېدل-

رسېدن:(ر-سې-دن)حاصل مصدر- وګورئ رسېدل-

رسېدنګ:(ر-سې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ رسېدل-

رسېدنه:(ر-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رسېدل-

رسېدون:(رَ-سې-دون)اسم- وګورئ رسېدل-

رسېدونکے:(رَ-سې-دون-کے)اسم فاعل- جمع رسېدونکي- مؤنث رسېدونکې- وګورئ رسېدل-

رسېدهٔ:(رَ-سې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رسېدل-

رسی:(رَ-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بياسته- رسه- پړے- بدريشه- لوئ او غټ پړے- لويه بدريژه- سوتلي- سوتري-

رش:(رش)اسم- (۱)دَ اړې بوره- دَ اړې بور- (۲)پوړر- مېدګي- (۳)وړې وړې دانې- ننکي- زخې- ګرمکې-

رش:(رش)اسم- (۱)خيرے- خوړے- چړک- (۲)ګاټه شربت- ټينګ يا غليظ شربت- (۳)څګ- کپا- قف- کپ-

رش:(رش)اسم- پېروے- دَ پيو سر- قيماق-

رشاد:(رَ-شاد)اسم- (۱)خوان- رشد موندلے- (۲)سم- برابر- پهٔ لاره سم- ګمراهي نه راوتلے- راست- دَ سمې لارې ښونکے- (۳)بريالے- کامياب-

رشادت:(رَ-شا-دت)اسم- زړورتيا- خونمرادي- راستي-

رشپت:(رش-پت)اسم- واحد- مذکر- دَ رشوت عاميانه تلفظ- رشوت- بډې- بالي- ناجائزه نذرانه-

رشپېل:(رش-پېل)اسم- واحد- مذکر- دَ زميداري اوزار چې غنم يا اوربشې پرې بادولے شي- وګورئ راشپېل-

رشتلے:(رش-تَ-لے)اسم- تلے- پاتې شوني- تې راش- تې خرمند- دَ درمنده پاتې- دَ رشې وچتولو نه پاتې شوې غله-

رشتونے:(رش-تو-نے)اسم صفت- رشتين- رښتونے- صادق- سپين- سم- ساده- سپېڅلے- جمع رشتوني-

رشته:(رش-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تار- مزے- سپنسے- (۲)څانګه- مسلک- اړيکې- رابطه- (۳)خپلوي- خپلولي-

رشته دار:(رش-ته-دار)اسم- خپل- عزيز- خپلوان-

رشته داري:(رش-ته-دا-ري)اسم- خپلوي- خپلولي- رګے-

رشتيا:(رش-تيا)اسم- رښتيا- صداقت- راست ګوئي- دَ دروغو ضد-

رشتين:(رش-تين)اسم صفت- رښتين- صادق- راست ګو-

رشتينوالے:(رش-تين-وا-لے)اسم- رښتينوالے- حقيقت- صداقت- رښتونے-

رشتينولي:(رش-تين-وَ-لي)اسم- صداقت- رښتيني-

رشد:(رُ-شد/رَشد)اسم- نمود- وده- جسمي او ذهني انکشاف- سمه لار موندنه- پهٔ ښهٔ بد پوهېدنه- هدايت موندنه- (۲)غوړېدنه- رسېدنه- غټېدنه- (م- عربي)-

رشقه:(رش-قه)اسم- واحد- مؤنث- رشکه- رښکه- دَ شوتلو غندې يو قسم واښهٔ چې کرلے کيږي او څاروي ئ خوري-

رشک:(رَ-شک/رشک)اسم- (۱)پم- پوم- پونے- دَ څرمنې يو قسم بيماري-

ئ (څې-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پيا-لی)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

(۲)ککړ- غش- ګډ- لړلے- په يو اصلي څيز کښې د يو بدل څيز ګډونه-

رشک:(رَ-شک/رَشک)اسم- (۱)سيالي- همسري- برابري- (۲)رخه- سخه- اوور- حسد- ترويخه-

رشکه:(رَش-که)اسم- واحد- مؤنث- رشه- راشهٔ- پېرې-

رشکين:(رَش-کين)اسم- (۱)مشوش- په تشويش کښې- (۲)ګډ- ککړ- لړلے- کلپ- ناپاکه- (۳)ننګيالے- غيرت مند- (فارسي)-

رشکي:(رَ-ش-کي)اسم- واحد- مؤنث- پېرې- غنهې- خټ- راشهٔ- وړه رشه-

رشل:(ر-شل)مصدر- ورتل- وربشل- ربشل-

رشلړے:(رش-ل-ړے)اسمِ صفت- هغه څوک چې د څهٔ پيسې په مقابل کښې په حمام کښې خلق کيسه کوي- کيسه مال- (افغانستان)-

رشن:(ر-شن)حاصلِ مصدر - وګورئ رشل-

رشنګ:(ر-شنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رشل-

رشنه:(ر-شهٔ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ رشل-

رشوت:(رِش-وَت)اسم- بډې- رشوه- رشپت- د څهٔ کار کولو د پاره ناجايزه تحفې- پيسې يا بل څهٔ څيز اخستنه-

رشوت خور:(رِش-وَت-خور)اسمِ صفت- بډې خوړونکے- هغه څوک چې رشوت اخلي-

رشوت خوري:(رِش-وَت-خو-ري)اسم- بډې خوړنه- بډې اخستنه- رشوت اخستنه- رشوت خوړنه-

رشونکے:(ر-شُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رشونکي- مؤنث رشونکې- وګورئ رشل-

رشوه:(رِش-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رشوت- جمع رشوې- (افغانستان)-

رشه:(رَ-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خوئ- عادت- خصلت- طبيعت- (۲)دود- دستور- رواج- رسم- (۳)ذوقه- خواړهٔ- خوراکي څيزونه- (۴)پېړوے- رش- قيماق- جمع رشې-

رشه:(ر-شه)اسم- واحد- مؤنث- ربشه- پاک شوے درمند- د درمند هغه پاکه شوې غله چې د اخستلو يا وړلو د پاره تياره وي-

رشيد:(رَ-شيد)اسمِ صفت- (۱)وړه موندلے- د ودې خاوند- هغه څوک چې د رشد وصف لري- (۲)هغه څوک چې ګټه او زيان او ښهٔ او بد سره پېژندلے شي- (۳)د ذهني او بدني ودې خاوند- (۴)سمه لار موندونکے- په لاره سم- رښتينے- (۵)زړور- زړهٔ ور- (م- عربي)-

رښ:(رِښ)اسم- واحد- مذکر- شيره- عصاره- خوښه- خوشاب- جوشاب- نچوړ-

رښتل:(رِښ-تل)مصدر- وربشل- رشل- ورتل- ابشل- مالوچ رېشنل-

رښتلے:(رِښ-تهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع رښتلي- مؤنث رښتلې- وګورئ رښتل-

رښتمني:(رِښت-م-ني)اسم- ثبوت- تحقيق- زبات- زبوت- (افغانستان)-

رښتن:(رِښ-تن)حاصلِ مصدر - وګورئ رښتل-

رښتنګ:(رِښ-تنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رښتل-

رښتنګلوي:(رِښ-تن-ګل-وي)اسم (۱)صداقت- سپين والے- رښتنګي-

(۲)دوستي-

رښتنګي:(رِښ-تن-ګي)اسم- رښتينولي- رښتين والے-

رښتنه:(رِښ-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رښتل-

رښتني:(رِښ-ت-ني)اسم- (۱)رښتيا- رشتيا- رښتينولي- صداقت- رښتون- (۲)خبره سپينونه-

رښتنے:(رِښ-ت-نے)اسمِ صفت- صادق- سپين- رښتونے- رشتينے- رښتينے-

رښتون:(رِښ-تُون)اسم- وګورئ رښتني- (افغانستان)-

رښتونکے:(رِښ-تُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رښتونکي- مؤنث رښتونکې- وګورئ رښتل-

رښتونے:(رِښ-تُو-نے)اسمِ صفت- رښتنے- صادق- سپين- رښتينے-

رښتيا:(رِښ-تيا)اسم- رشتيا- صداقت- د دروغو ضد-

رښتياتوب:(رِښ-تيا-توب)اسم- وګورئ رښتياوالے-

رښتياګلوي:(رِښ-تيا-ګل-وي)اسم- سچائي- صداقت- رښتياوالے-

رښتياګو:(رِښ-تيا-ګو)اسم- په رښتيا- په صداقت- د حقيقت لهٔ مخې- رښتيانو-

رښتيانو:(رِښ-تيا-نو)اسم- وګورئ رښتياګو- اکثر ورسره "د" راځي لکه، د رښتيانو-

رښتيانے:(رِښ-تيا-نے)اسم- د رښتيا- د حقيقت- په رښتيا مربوط- حقيقي- رښتونے- پاک- سوچه-

رښتياوالے:(رِښ-تيا-وا-لے)اسم- سپينوالے- رښتياتوب- صداقت-

رښتين:(رِښ-تين)اسمِ صفت- رشتين- صادق- سپين- رښتونے-

رښتين توب:(رِښ-تين-توب)اسم- ريشتينتوب- په رښتيا- رښتياني- ريښتيا- سچائي-

رښتينتيا:(رِښ-تين-تيا)اسم- وګورئ رښتين توب-

رښتينګلوي:(رِښ-تين-ګل-وي)اسم- رشتياوالے- صداقت-

رښتينواله:(رِښ-تين-وا-له)اسم- راستي- صداقت- اخلاص-

رښتينولي:(رِښ-تين-وَ-لي)اسم- د يوې خبرې سپينونه- د يوې موضوع دروغ او رښتيا معلومونه-

رښتيني:(رِښ-تي-ني)اسم- وګورئ رښتني-

رښتينے:(رِښ-تي-نے)اسمِ صفت- وګورئ رښتين- جمع رښتيني-

رښک:(رِښک)اسم- (۱)کرښه- خط- ليکه- کيله- رښکه- (۲)نښه- اثر- علامه- نښکه-

رښکه:(رِښ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کرښه- رښک- (۲)توټنې- پترکے- (۲)تشنج- هيجان-

رښکي:(رِښ-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- رېښکي- (۱)ريښه- ريتاړه- ليتاړه- ريتوره- رنجه د رخت وړده يا وړه ټوټه- (۲)په پټي کښې د کر د پاره جوړه شوې دوپچه-

رښېدل:(رِ-ښې-دل)مصدر- ترښدل- ترهښدل- ويرښدل- ښېرښدل- ړاړښدل-

ترارېدل- ترپېدل-

رښېدلے:(رَ-ښې-دَه-لے)اسم مفعول- جمع رښېدلي- مؤنث رښېدلې- وګورئ رښېدل-

رښېدن:(رَ-ښې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رښېدل-

رښېدنګ:(رَ-ښې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رښېدل-

رښېدنه:(رَ-ښې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رښېدل-

رښېدونکے:(رَ-ښې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رښېدونکي- مؤنث رښېدونکې- وګورئ رښېدل-

رښېده:(رَ-ښې-دَه)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رښېدل-

رښی:(رَ-ښی)اسم- نول- کړاؤ- غصه-

رښے:(رَ-ښے)اسم- واحد- مذکر- دَ ګُتې بند-

رصاص:(ر-صاص)اسم- قلعی- سپينځی- سيکه- (عربی)-

رصانت:(رَ-صا-نت)اسم- کلکتوب- کلکتيا- ټينګواله- ټينګوالے- مضبوطی- محکمی- (عربی)-

رصد:(رَ-صَد)اسم- (۱)څارنه- (۲)دَ ستوريو ګردش کتنه- اسمان څار- (۳)لاره- (۴- صفت)ساتونکے- محافظ-

رصدخانه:(رَ-صَد-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه لوړ او ټاکلے ځاے چې ترې دَ ستوريو او سيارو څارنه کيږی- رصدګاه-

رصدګاه:(رَ-صَد-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رصدخانه-

رصين:(رَ-صين)اسمِ صفت- محکم- ټينګ- مضبوط- (عربی)-

رضا:(رَ-ضا)اسم- (۱)خوښه- اختيار- موافقت- مېل- رغبت- (۲)انتخاب- غوره کونه- چاړ- چوڼ- (۳- صفت)راضی- خوښ- تابع- خوشحال- (م- عربی)-

رضا صلا:(رَ-ضا-صَ-لا)اسم- صلا بمصلحت- رضامندی- خوښی- پهٔ جوړ جاړ-

رضاعت:(رَ-ضا-عَت)اسم- دَ ماشوم پيو رودلو موده-

رضاعی:(رَ-ضا-عی)اسمِ صفت- دَ تی ورور- دَ پيو شريک ورور- رودنی- دَ تی ورور يا خور-

رضاکار:(رَ-ضا-کار)اسمِ صفت- دَ قوم او ملک خدمت ته پخپله خوښه ځان وړاندې کونکے- جمع رضاکاران-

رضاکارانه:(رَ-ضا-کا-را-نه)اسم- پهٔ رضا- پهٔ خوښه- پهٔ خپل زړهٔ-

رضامند:(رَ-ضا-مَند)اسمِ صفت- راضی- رضا- قانع- خوښ-

رضامندی:(رَ-ضا-مَن-دی)اسم- رضايت- رضا- خوښی- خوښه- رغبت- زړهٔ- مرضی- مېل- موافقه- قناعت-

رضا نارضا:(رَ-ضا-نا-رَ-ضا)اسم- مجبوراً- پهٔ زور زياتی- پهٔ ناچاری- ارومرو- خامخا- خوښی ناخوښی- چې دَ چا دَ خوښې ناخوښې خيال پکښې نهٔ ساتلے کيږی-

رضايت:(رَ-ضا-يت)اسم- (۱)رضامندی- (۲)اجازت- رخصت- (۳)خوښی- خوښه- مېل- (م- عربی)-

رضوان:(رض-وان)اسم- دَ جنت څوکيدار-

رضيع:(رَ-ضيع)اسم- تے رودونکے- تے روے- هغه ماشوم بچے چې پئ روی-

رطب:(رَطب)اسم- لوند- تازه -تر- خوشت- خيشت- (م- عربی)-

رطل:(ر-طل)اسم- دَ شرابو پياله- اوړی- دَ وزن يوه پېمانه- (م- عربی)-

رطوبت:(رَ-طو-بت)اسم- لوندوالے- نمی- تازګی- لنده بل- خوشتوالے- (م- عربی)-

رعايا:(ر-عا-يا)اسم- رعيت- حکم منونکی- رعيت-

رعايت:(ر-عا-يَت)اسم- خاطر- لحاظ- نګهبانی- حق پېژندنه- (م- عربی)-

رعايتول:(ر-عا-يه-تَ-وَل)مصدر- پاس لرل- مراعاتول- لحاظ کول- خاطر کول- (۲)دَ يو اَصل دَ اساسونو سره سم تګ کول- (۳)دَ چا حق پېژندل- (افغانستان)-

رعايتولے:(رَ-عا-يه-تَ-وَه-لے)اسمِ مفعول- جمع رعايتولی- مؤنث رعايتولې- وګورئ رعايتول-

رعايتون:(ر-عا-يه-تَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رعايتول-

رعايتونکے:(ر-عا-يه-ت-وون-کے)اسم فاعل- جمع رعايتونکی- مؤنث رعايتونکې- وګورئ رعايتول-

رعايتونګ:(ر-عا-يه-تَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رعايتول-

رعايتونه:(ر-عا-يه-تَ-وَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رعايتول-

رُعب:(رُعب)اسم- وېره- ډار- روپ- روب- خوف- يره- مصيبت- پرتم- ستر-

رُعب داب:(رُعب-داب)اسم- شان شوکت- دبدبه- سام-

رعد:(رَعد)اسم- (۱)تنا- تالنده- دَ اسمان غرا- دَ اسمان ګړزا- دَ اسمان ګړز ګروز- غرنده- (۲)تندر- صاعقه- ټکه- (م- عربی)-

رعنا:(رع-نا)اسم- خيالی- خيالی ګره- احمقه او خودخواه ښځه- (۲)ښکلې- پړولی- دَ ښهٔ او متناسب اندام خاونده-

رعنائی:(رع-نا-ئی)اسم- ښائېست- ښکلا- حُسن- وضع داری- خيال-

رعونت:(رَ-عو-نت)اسم- (۱)تکبر- غرور- (۲)تُندی- (۳)ناپوهی- کم عقلی-

رعيت:(رَ-عی-يت)اسم- پاسلے- تابع- تبعه- اتباع- رايت- رعايا- عوام- هغه قوم يا ټولنه چې يو سرپرست لری- دَ بزرګانو يوه ډله چې پهٔ يو ملک کښې دَ يو مالک دَ حکم لاندې وی- (۲)پسه- ګله- (۴)رام- تر ارادې لاندې- (افغانستان)-

رعيتی:(رَ-عی-يه-تی)اسم- رايتی- دَ رعيت- دَ اولس- رعيت ته منسوب-

رغ:(رَغ)اسم- ښکاره- څرګند- جوت- صاف- واضح-

رغ:(رَغ)اسم- (۱)اروپمے- تبغ- اروے- (۲)چاره- سازش- جوړه- موافقه-

رغ:(رَغ)اسم- دَ غرهٔ لمن- راغه- روغه-

رغا:(رَ-غا)اسم- (۱)رغاونه- رغېدنه- جوړېدنه- ښهٔ کېدنه- (۲)زړهٔ صبرونه- زړهٔ صبرېدنه-

رغا:(رَ-غا)اسمِ صوت- وړده چغه-

ي (ښي-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

رغام:(رَ-غام)اسم- دوړه- ایره- ګرد- غُبار-

رغاندل:(رَ-غان-دل)مصدر- (۱)کوکه اېستل- کریوه اېستل- کریکه اېستل- چغه اېستل- (۲)شاربل- دَ مستو شاربل- (۳)غندل- بَد وئیل-

رغاندلے:(رَ-غان-دهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ رغاندل-

رغاندن:(رَ-غان-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رغاندل-

رغاندنګ:(رَ-غان-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رغاندل-

رغاندنه:(رَ-غان-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رغاندل-

رغاندونکے:(رَ-غان-دُون-کے)اسم فاعل- جمع رغاندونکی- مؤنث رغاندونکې- وګورئ رغاندل-

رغاندهٔ:(رَ-غان-دهٔ)اسم- وګورئ رغاندل-

رغاو:(رَ-غاو)اسم- رغاوه- رغېدنه- زړه صبرېدنه- اړیکې پرېکونه- دَ مناسباتو لهٔ مینځه اوړنه-

رغاوه:(ر-غا-وه)اسم- وګورئ رغاو-

رغاوېیز:(رَ-غاو-ېیز)اسم صفت- (۱)شاندار- له پرتمه- ډک- (۲)ښائېسته- ښکلے- ډولی یا منقش-

رغبت:(رَغ-بت)اسم- (۱)غُښتنه- مېل مېلان- ارزو- هیله- علاقه- توجه- (۲)خوښه- دوستی- خپلولی-

رغبولے:(رَغ-بو-لے)اسم- یو قسم خوشبویه نازک او سپین بوټے چې دَ پسرلی پهٔ موسم کښې پهٔ غرونو کیږی- خلق یُ پاڼې شوکوی او پهٔ شوملو مستو کښې یُ اچوی-

رغدے:(رغ-دے)اسم صفت- دروغلے- چالاک- غولونکے- (م- عربی)-

رغریوبے:(رَغر-یو-بے)اسم صفت- دَ کښت پهره دار- دُ فصل ساتندوئے- جمع رغریوبی- (افغانستان)-

رغړ:(رَ-غړ)اسم صفت- زوېړ- ژوره- ټیټ پاس- ښکته پورته ځایَ- کوز او ټیټ ځایُ-

رغړند:(رَغه-ړند)اسم صفت- (۱)خوړے- خوړ- مایَل ځایُ- (۲)رغړېدونکے- تیلېدونکے-

رغړندوکے:(رَغه-ړن-دو-کے)اسم- لولک- تلنکے- دَ ماشومانو دَ لوبو یو څیز چې رغړی- (افغانستان)-

رغړنده:(رَغه-ړن-ده)اسم صفت- رغړند- مخ چړن ځایُ چې هر شے ترې نه رغړی او څهٔ پرې ټینګیږی نه-

رغړول:(رَغه-ړ-وَل)مصدر- (۱)کولول- تیلول- کړرول- ګرړول- (۲)لټ پهٔ لټ یا لوټ پهٔ لوټ اړول- (۳)خَلهٔ ښکالول- اُبهٔ غرغره کول- (۴)غولول- خطا اېستل- (۵)دروغ وئیل-

رغړولے:(رَغه-ړ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رغړولی- مؤنث رغړولې- وګورئ رغړول-

رغړون:(رَغه-ړ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ رغړول-

رغړونکے:(رَغه-ړ-وون-کے)اسم فاعل- جمع رغړونکی- مؤنث رغړونکې- وګورئ رغړول-

رغړونګ:(رَغه-ړ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رغړول-

رغړونه:(رَغه-ړ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رغړول-

رغړېدل:(رَغه-ړې-دَل)مصدر- (۱)کولېدل- تیلېدل- کرړېدل- ګرړېدل- (۲)لټ پهٔ لټ یا لوټ پهٔ لوټ اوړېدل- (۳)خَلهٔ کنکالېدل- اُبهٔ غرغره کېدل- (۴)غولېدل-

رغړېدلے:(رَغه-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رغړېدلی- مؤنث رغړېدلې- وګورئ رغړېدل-

رغړېدن:(رَغه-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ رغړېدل-

رغړېدنګ:(رَغه-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رغړېدل-

رغړېدنه:(رَغه-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رغړېدل-

رغړېدونکے:(رَغه-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع رغړېدونکی- مؤنث رغړېدونکې- وګورئ رغړېدل-

رغړېدهٔ:(رَغه-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رغړېدل-

رغړی:(رغ-ړی/رهٔ-غهٔ-ړی)اسم- تېغې او سپینې سترګې- تاغې او سپینې سترګې- (افغانستان)-

رغړی:(رغ-ړی)اسم- مؤنث- یوه ارابه لرونکې وسیله چې خاورې خځلې یا دَ پټی خاوره پکښې وړلے شی- (افغانستان)-

رغزی:(رغ-زی)اسم- واحد- مذکر- ګل ورین- ګلونه راټوکېدنه- ګلبدن- چمنستان جوړېدنه-

رغستل:(رَ-غس-تَل)مصدر- جنګ کول- پهٔ یو بل چکونه او نوکارې لګول-

رغستن:(رَ-غس-تن)اسم- چاره- لاره- سبب-

رغستن:(رَ-غس-تَن)حاصل مصدر- وګورئ رغستل-

رغستنګ:(رَ-غس-تَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رغستل-

رغستنه:(رَ-غس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رغستل-

رغستونکے:(رَ-غس-تُون-کے)اسم فاعل- جمع رغستونکی- مؤنث رغستونکې- وګورئ رغستل-

رغشتل:(رَ-غش-تَل)مصدر- رارغړول-

رغښت:(رَغښت)اسم- (۱)لټ پهٔ لټ- لوټکی- (۲)ځغلېدهٔ- ځغل- ځغاسته- منډه- (۳)کولېدهٔ- تولېدهٔ- تیلېدهٔ- رغړېدهٔ-

رغښت:(رَ-غښت)اسم- جوړښت- جوړېدنه- رغېدنه- روغېدنه-

رغښتل:(رَغښ-تَل)مصدر- (۱)رغړېدل- کولېدل- تیلېدل- پېچل کېدل- (۲)الوټ پهٔ لوټ یا لټ پهٔ لټ اوښتل- (۳)دَ دېوال چپه کېدل-

رغښتلے:(رَغښ-تهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رغښتلی- مؤنث رغښتلې- وګورئ رغښتل-

رغښتن:(رَغښ-تَن)حاصل مصدر- وګورئ رغښتل-

رغښتنګ:(رَغښ-تَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رغښتل-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

رغښتنه:(رَغْښ-تَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رغښتل-

رغښتونکے:(رَغْښ-تُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رغښتونکي- مؤنث رغښتونکې- وګورئ رغښتل-

رغښتے:(رَغْښ-تے)اسمِ مفعول- جمع رغښتي- مؤنث رغښتې- وګورئ رغښتل-

رغلے:(رَغْهْ-لے)اسم- انغرے- درې پښې لرونکے دَ اُسپنې نغرے- جمع رغلي-

رغم:(رَ-غَم)اسم- مخالفت کونه- ضد کونه-

رغمه:(رَغْ-مه)اسم- صبر-

رغندل:(رَ-غَن-دَل)مصدر- دلول- ورغاندل- مېده کول- وړول- غوځول-

رغندن:(رَ-غَن-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رغندل-

رغندنګ:(رَ-غَن-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رغندل-

رغندنه:(رَ-غَن-دَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رغندل-

رغندونکے:(رَ-غَن-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع رغندونکي- مؤنث رغندونکې- وګورئ رغندل-

رغندے:(رَ-غَن-دے)اسم- دَ مرئ وېخ- غرندے- جمع رغندي-

رغنه:(رَ-غَهْ-نه)حاصلِ مصدر- رغېدنه-

رغوټے:(رَ-غو-ټے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ زغم خاوند- دَ حوصلې خاوند-

رغوست:(رَ-غوست)اسم- غنم رنګے- توربخن-

رغول:(رَ-غَ-وَل)مصدر- (۱)ابادول- جوړول- سازول- سمول- (۲)ګنډل- (۳)شفا ورکول- په علاج سره ناروغه جوړول- (۴)نقاشي کول- منقش کول- (۵)په دښمنۍ کښې ځان خلاصول او جوړېدل-

رغول:(رَ-غَ-وَل)مصدر- زړه صبرول- رابطه شلول- اړيکې شلول- رابطه قطع کول- لهٔ يو بل نه لاس اخستل-

رغولے:(رَ-غَ-وَهْ-لے)اسمِ مفعول- جمع رغولي- مؤنث رغولې- وګورئ رغول-

رغون:(رَ-غون)اسم- مذکر- زړهٔ صبرونه- رابطه قطع کونه-

رغون:(رَ-غَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رغول-

رغونګ:(رَ-غَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رغول-

رغونه:(رَ-غَ-وَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رغول-

رغونکے:(رَ-غَ-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع رغونکي- مؤنث رغونکې- وګورئ رغول-

رغه:(رَ-غه)اسم- وګورئ راغه-

رغيدن:(رَ-غين-دَن)حاصلِ مصدر- دَ رغېدن بل قرأت- وګورئ رغېدل-

رغېدل:(رَ-غې-دَل)مصدر- (۱)روغېدل- شفا موندل- (۲)جوړېدل- سازېدل- دَ ورانېدل ضد- (۲)ګنډلے کېدل- پېوندېدل-

رغېدل:(رَ-غې-دَل)مصدر- رابطه قطع کېدل- اړيکې يا رابطه پرېکېدل- دوستي او خپلوي پرېښول- لهٔ يو بله لاس اخستل-

رغېدلے:(رَ-غې-دَهْ-لے)اسمِ مفعول- جمع رغېدلي- مؤنث رغېدلې- وګورئ رغېدل-

رغېدن:(رَ-غې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رغېدل-

رغېدنګ:(رَ-غې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رغېدل-

رغېدنه:(رَ-غې-دَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رغېدل-

رغېدونکے:(رَ-غې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع رغېدونکي- مؤنث رغېدونکې- وګورئ رغېدل-

رغېدهٔ:(رَ-غې-دَهْ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رغېدل-

رغی:(رَ-غي)اسم- تورکے- ټول شوے لوګے- سره راغونډ شوے دود- هغه لوګے چې په چت يا دېوال نښتے وي- رنګی- رغے-

رغے:(رَ-غے)اسم- واحد- مذکر- لړ ژور- هغه ړنډ يا لوښے چې ډېر لږ ژور وي- مؤنث رغی-

رغے:(رَ-غے)اسم- (۱)رغونه- جوړښت- اصلاح- جوړه- پُخلا کونه- (۲)وګورئ رغی-

رف:(رَف)اسم- موړه- مورکه- پشته- اړم- هغه تخته چې دَ کور وړوکے وړوکے سامان پرې اېښوے شي- رپ- چنه-

رفا:(رَ-فا)اسم- اتفاق- نژدې والے- پرله پورې والے- (افغانستان)-

رفاقت:(رَ-فا-قَت)اسم- (۱)ملګرتيا- ملګرتوب- انډيوالي- (۲)يارانه- تار اچونه- (م- عربي)-

رفاه:(رَ-فاه)اسم- (۱)ارامي- هوساينه- هوساني- سوکالي- ښېګړه- (۲)پرېماني- فراواني- دَ اقتصادی دور يوه مرحله- (م- فارسی)-

رفتار:(رَف-تار)اسم- واحد- مذکر- (۱)چلند- چله- روش- ګوزاره- سلوک- (۲)يون- تګ- حرکت- تلنه- تلګ- (م- فارسی)-

رفت آمد:(رفت-آ-مد)اسم- (۱)تګ راتګ- تلهٔ راتلهٔ- تلل- (۲)مدار- عزت-

رفتګی:(رَف-تَ-ګي)اسم- دَ وخت دَ مروج رسم رواج سره مطابقت-

رفرف:(رَف-رَف)اسم- (۱)خمبل- خبل- (۲)دَ حضرت اسرائيل عليه السلام دَ وسېدو ځاې- (۳)دَ هغه سورلی نوم چې حضور صلی الله عليه وسلم پرې دَ معراج په شپه سورلي کړې ده-

رفری:(رَف-ري)اسم- (۱)دَ لوبو قاضي- منځغوړ- حَکم- (۲)هغه څوک چې دَ حل يا پرېکړې دَ پاره يوه موضوع ورته سپارلے کيږي- (م- انګريزی)-

رفع:(رَ-فَع)اسم- (۱)لرې کونه- ايسته کونه- لهٔ مينځه وړنه- (۲)جګونه- لوړونه- پورته کونه- (۳)دَ يوې کلمې مرفوع کونه- حذفونه-

رفعت:(رَف-عَت)اسم- دَ رتبې وچتوالے- بلندي- لوئ- (م- عربی)-

رفع دفع:(رَ-فَه-دَ-فَه)اسم- اپه دپه- ختمونه- برخاستونه-

رفو:(رَ-فو)اسم- (۱)پنځرے- کرمل- کربل- ګنډنه- رپو- پنځرک- ترميم- دَ قميص يا پرتوګ شلېدلے ځاې بيا جوړونه- (۲)پېوند- ګنډ- پينه- پېينه-

رفوګر:(رَ-فو-ګر)اسم- رفو کونکے- هغه څوک چې دَ رفو کولو کسب کوي-

رفيع:(رَ-فيع)اسمِ صفت- (۱)لوړ- مسک- جګ- (۲)دَ لوړې مرتبې يا درجې خاوند- شريف- (م- عربی)-

ی"(ځی-رَل)، ې"(هې-ره-وَل)، ی"(پيا-لي)، ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱.

رفيق:(رَ-فيق)اسم- (۱)ملگرے- مَل- دوست- انډيوال- (۲)دَ يوهٔ فکر- دَ يوهٔ اند- (۳)يار- محبوب- معشوق-

رفيقي:(رَ-فی-قي)اسم- رفاقت- ملگرتيا-

رق:(رق)اسم- (۱)مرئے- غلام- بنده- (۲)غلامي- مريتوب- (م- عربی)-

رق:(رق)اسم صفت- ابغ نبغ-

رقاب:(رَ-قاب)اسم- (۱)غاړې- څټونه- (۲)غلامان-

رقابت:(رَ-قا-بت)اسم- (۱)څارنه- څار- نگهبانی- حفاظت- (۲)سيالی- سونده- (۳)مخالفت- (۴)پهٔ مينه کښې شرکت- (۵)انتظار-

رقاص:(رَ-قاص)اسم- گډېدونکے- نڅے- ناڅو- لښتی- مؤنث رقاصه- (م- عربی)-

رقاصه:(رَ-قا-صه)اسم- واحد- مؤنث- جمع رقاصې- وگورئ رقاص-

رقبه:(رَق-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ساحه- مساحت- (۲)مرئے- (۳)غلام- بنده- (۴)هغه زمکه چې چا ته دَ هغهٔ تر مرگه پورې ورکړے شوې وی-

رقت:(رِ-قت)اسم- (۱)نازکی- (۲)نرمی- لطافت- (۳)مهربانی- زړهٔ سوے- رحم- زړهٔ سواندی- (۴)شرم- (م- عربی)-

رقص:(رقص)اسم- گډا- نڅا- جمع رقصونه-

رقصول:(رَق-ص-ول)مصدر- گډول- نڅول- (م- عربی)-

رقصېدل:(رَق-صې-دَل)مصدر- نڅېدل- گډېدل- رقص کول-

رقصېدن:(رَق-صې-دَن)حاصلِ مصدر- وگورئ رقصېدل-

رقصېدنگ:(رَق-صې-دَنگ)حاصلِ مصدر- وگورئ رقصېدل-

رقصېدنه:(رَق-صې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وگورئ رقصېدل-

رقصېدونکے:(رَق-صې-دُون-کے)اسم فاعل- وگورئ رقصېدل-

رقعه:(رُق-عه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خط- ليک- دَ کاغذ هغه ټوټه چې څهٔ ورباندې ليکلے کيږی- (۲)دَ يو شی ټوټه يا ځيرې برخه-

رقم:(رَ-قم)اسم- (۱)راز- ډول- قسم- (۲)انځور- (۳)ليک- (۴)عدد- (۵)پټ ليک-

رقوم:(رَ-قوم)اسم- دَ رقم جمع- وگورئ رقم-

رقيب:(رَ-قيب)اسم- واحد- مذکر- (۱)حريف- رخے- سيال- دښمن- (۲)څارو- ساتونکے- (م- عربی)-

رقيق:(رَ-قيق)اسم صفت-اُبڼ- نرے نروبے- اُبلن- هغه مايع چې ټينګه نهٔ وی- دَ غليظ مقابل-

رک:(رک)اسم صفت- (۱)څرگند- ښکاره- جوت- واضح- صفا- (۲)رڼ- ړانگ- معلوم- (۳)ښېخی- بالکل- بشپړ-

رکاب:(رِ-کاب)اسم- واحد- مذکر- رکابه- رکېب- دَ أسپنې هغه دوه حلقې چې دَ زين دواړو اړخو ته اويزاندې وی او سور پکښې پښې ږدی- (م- عربی)-

رکابدار:(رِ-کاب-دار)اسم- (۱)هغه نوکر چې پهٔ أس باندې دَ خپل مالک دَ سورېدو پهٔ وخت کښې دَ أس رکاب نيسی- (۲)شاطر- جلبی- هغه پلے چې دَ سوارهٔ په لاره يا پهٔ مخکښې يا ورسره يوځاے ځی-

رکابی:(ر-کا-بی)اسم- رکابی- رکېبی- قاب- غاب- پلېټ-

رکابی:(ر-کا-بی)اسم- واحد- مؤنث- رکېبی- پلېټ- قاب- غاب- رکابی-

رکات:(رَ-کات)اسم- واحد- مذکر- رکعت- دَ نمونځ دومره حصه چې پکښې يو رکوع هم راشی- دَ نمونځ هغه حصه چې پکښې يو رکوع او دوه سجدې راشی-

رکاټ:(ر-کاټ)اسم- واحد- مذکر- وگورئ ريکاټ- جمع رکاټونه- (م- انگريزی ريکارډ)-

رکبه:(رک-به)اسم- واحد- مذکر- کښے- دَ ورشو يا څرځاې ساتونکے- دَ کروندې يا فصل ساتونکے- دَ أبو ساتونکے-

رک پک:(رک-پک)اسم- بالکل- صريح او صاف- ښېخی پاک او صاف- (افغانستان)-

رک روغ:(رک-روغ)اسم- روغ رومټ- روغ جوړ- ښېخی جوړ-

رکړه:(رَ-کهٔ-ړه)اسم- واحد- مذکر- ورزرکه- زرورجانه- روکے- دَ ورور مصغر- کله کله دَ زياتې مينې دَ څرگندولو دَ پاره هم استعماليږی- (افغانستان)-

رکشه:(رک-شه)اسم- واحد- مؤنث- هغه مشين لرونکې ډولکی چې سورلی پکښې اوړلے شی- جمع رکشې-

رکښ:(رکښ)اسم- کرښه- نښه- اثر- ځاپ- علامه- نښانه- رکښه- نښکه- (افغانستان)-

رکښه:(رک-ښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نښکه- رکښ- نښه- نښانه- علامه- (۲)پهٔ غرهٔ کښې نرۍ لار- پهٔ غرهٔ کښې نرے رو- (افغانستان)-

رکعت:(رَ-کعت)اسم- واحد- مذکر- وگورئ رکات- جمع رکعتونه-

رُکن:(رُ-کن)اسم- واحد- مذکر- (۱)ستن- بنسټ- پايه- (۲)مهم جز- ستر توک- (۳)دَ هر شی لويه برخه- دَ هر شی پياوړے توک- (۴)ستره چاره- لوې کار- (۵)دَ قوم مشر- دَ قوم واکمن- جمع ارکان- (م- عربی)-

رکوتر:(ر-کو-تر)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه لرگے چې توږل شوے نهٔ وی- خنډ لرونکے لرگے- (۲)سوټے- لوړ- کوتک- ډنډه- ړانگ-

رکود:(ر-کود)اسم- ځاې پهٔ ځاې وډرېدنه- ټپ وډرېدنه- (م- عربی)-

رکوع:(رُ-کوع)اسم- دَ سجدې او قيام تر مينځه حالت- پهٔ مانځهٔ کښې دَ وډرېدو نه وروستو دَ کوږېدو هغه حالت چې لاسونه پهٔ زنگونونو وی-

رکيک:(رَ-کيک)اسم صفت- (۱)سپک- بې ادبه- سپين سترگے- (۲)سُست- بې کاره- ضعيف- (م- عربی)-

رکين:(رَ-کين)اسم- مضبوط- محکم- ټينگ- (م- عربی)-

رکېب:(ر-کېب)اسم- واحد- مذکر- وگورئ رکاب- جمع رکېبونه-

رکېبی:(ر-کې-بی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)رکابی- رغے- غاب- قاب- بشقاب- (۲)نالبکے- نولبېکے- نعلبکے-

رکے:(ر-کے)اسم- واحد- مذکر- وزله- رېبار-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکونې)، ة(ز-ړه)، ة(ړو-ښې-دهٔ)

رګ:(رګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ انسان او حیوان پهٔ وجود کښې هغه نالې چې وینه پکښې ګرځي راګرځي- (۲)په تېږه کښې نرۍ کرښه یا خط- (۳)فکر- نظر- (۴)رګې- رېکې- رشته- دَ خپلوۍ رابطه- جمع رګونه-

رګ بسته:(رګ-بس-ته)اسم- خپلوۍ- دَ وینې رشته-

رګ ریښه:(رګ-ری-ښه)اسم- رشته- اصل نسل- زوزاد- زوزات-

رګړه:(رګ-ړه)اسم- مېده کونه-

رګړے:(رګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- لهٔ تې بیل شوے ماشوم- لهٔ تې پرې شوے ماشوم- لهٔ تې جُدا شوے ماشوم- دَ پیو څخه پرې شوے ماشوم-

رګ وهل:(رګ-وَ-هَل)فعل- (۱)دَ رګ نه وینه وېستل- (۲)تشې مُتیازې کول-

رګ وهنه:(رګ-وَ-هَ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رګ وهل-

رګ وهونکے:(رګ-وَ-هُون-کے)اسم فاعل- جمع رګ وهونکي- مؤنث رګ وهونکې- وګورئ رګ وهل-

رګ وهونے:(رګ-وَ-هُو-نے)اسم فاعل- وګورئ رګ وهونکے-

رګه:(رَ-ګه)اسم- واحد- مذکر- (۱)لاره- رخه- جاده- (۲)نښه- نښانه- دَ کرښې نښه- جمع رګې-

رګی:(رَ-ګی)اسم صفت- سارهٔ وهلے- تود سوړ- دَ ګرم کار نه پس دَ یخو اُبو دَ څښلو په وجه بیمار شوے- (افغانستان)-

رګۍ:(رَ-ګۍ)اسم- واحد- مؤنث- بابښه- دَ جرې مؤنث-

رګۍ:(رَ-ګۍ)اسم- واحد- مؤنث- لاره- وګورئ رګه-

رګے:(رَ-ګے)اسم- رشته داری- خپلوۍ- خپلولي-

رم:(رم)اسم- ویره- ترهه- تور- ترایه- (م- فارسی)-

رماز:(رَ-ماز)اسم- رموز- اشاره-

رمال:(رَ-مال)اسم- فال بین- فال کتونکے- دعوتی- تروېتي- تورېتي-

رمان:(رُ-مان)اسم- نرګوسے- انارګوسے- انار- (م- عربی)-

رمباړه:(رم-با-ړه)اسم صوت- واحد- مؤنث- (۱)دَ ځناور اواز- رمبکے- (۲)اوږده چغه- جمع رمباړې-

رمبکتیا:(رم-بک-تیا)اسم- اداره- انضباط- (افغانستان)-

رمبکه:(رم-بَ-که)اسم- واحد- مؤنث- تېغے- تېغنه- تېغه- دَ بوټي یا خس تازه سر وهنه- راوتنه-

رمبکه:(رم-به-که)اسم صوت- واحد- مؤنث- وګورئ رمباړه- جمع رمبکې-

رمبکے:(رم-بَ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې دَ یو قام یا اولس یا یوې سیمې څخه غوره کیږی او دَ یو مهمې موضوع پهٔ وخت کښې دَ خلقو دَ خبرولو یا امنیت دَ ساتلو دنده تر سره کوی- (۲)وګورئ رمباړه- جمع رمبکی- (افغانستان)-

رمبوسے:(رم-بو-سے)اسم- واحد- مذکر- راموسے- راموسی- مشک لرونکې موسې-

رمبه:(رم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)برمه- (۲)رمبے- لهٔ اُسپنې جوړه تېره آله- (۳)یو قسم لو چې پهٔ ولاړه کیږی- (افغانستان)-

رمبے:(رَم-بے)اسم- (۱)رمبه- (۲)دَ موچی دَ کار یوه آله چې څرمن یا ربړ یا تار پرې غڅولے یا توږلے شی- جمع رمبی-

رمټ:(رَ-مټ)کلمه- ترکیبی صفت لرونکې کلمه لکه روغ رمټ-

رمد:(رَ-مد)اسم- دَ سترګو مرض چې پکښې دَ سترګو سپین سرهٔ شی او ډېر درد کوی-

رمز:(رمز)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ سترګو شونډو یا وروځو اشاره- (۲)پټه اشاره- زونګه- (۳)راز- پټه خبره- جمع رموز رموزونه- (م- عربی)-

رمضان:(رم-ضان)اسم- روژه- دَ روژې میاشت- دَ هجری قمری کال نهمه میاشت- (م- عربی)-

رمق:(رَ-مق)اسم- (۱)اخرنی سلګی- وروستے دم- نرۍ ساه- (۲)توان- تاب- (۳)لږه غذا- (۴)دَ پسونو ګله- (م- عربی)-

رمل:(رَ-مل)اسم- (۱)پوست ریګ- (۲)دَ یو علم نوم- (۳)دَ زیړو نه جوړ شوی مکعبونه چې پهٔ پېشنګویی کښې ترې کار اخلی- (۴)دَ شعرونو دَ بحرونو څخه دَ یو بحر نوم- (۵)لږ باران- (۶)پړېښت- (۷)دَ وحشی غوائی د پښو کرښې چې د بدن رنګ ته یې نژدې والے وی نهٔ لری- (م- عربی)-

رمنډ:(رَ-منډ)اسم صفت- لوڅ- لڅ- لغړ- بربنډ- برمنډ-

رموز:(رُ-موز)اسم- وګورئ رمز-

رمول:(رَ-مه-وَل)مصدر- (۱)ترول- بارول- بېرول- ویرول- ترهول- (۲)څاروی لهٔ کوره دَ څر ځاې ته بوتلل- پوول- پیایل- بیول-

رمولے:(رَ-مه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رمولی- مؤنث رمولې- وګورئ رمول-

رمون:(رَ-مه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ رمول-

رمونکے:(رَ-مه-وون-کے)اسم فاعل- جمع رمونکی- مؤنث رمونکې- وګورئ رمول-

رمونګ:(رَ-مه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رمول-

رمونه:(رَ-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رمول-

رمه:(رَ-مه)اسم- واحد- مؤنث- غېله- غېیله- دَ بزو او پسونو ګله-

رمه:(رهٔ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زوه- رمې- نو- هغه مواد چې له زخمه راوځی- (۲)هغه سپینې ابهٔ چې دستونو سره ځی- جمع رمې-

رمه وال:(رَ-مه-وال)اسم- د رمې خاوند- دَ رمې څښتن-

رمه یی:(رَ-مه-یی)اسم- میایی پسهٔ- د رمې پسهٔ- دَ ګلې پسهٔ- (افغانستان)-

رمیا:(رَم-یا)اسم- شپون-

رمیتون:(رَ-می-تون)اسم- شفاخانه-

رمېدل:(رَ-مې-دَل)مصدر- (۱)ترېدل- بارېدل- (۲)څاروی له کوره د څر ځاې ته بوتلل- پووَل کېدل-

رمېدلے:(رَ-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رمېدلی- مؤنث رمېدلې- وګورئ رمېدل-

رمېدن:(رَ-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ رمېدل-

رمېدنګ:(رَ-مې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رمېدل-

رمېدنه:(رَ-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رمېدل-

رمېدونکے:(رَ-مې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رمېدونکي- مؤنث رمېدونکې- وګورئ رمېدل-

رمېدهٔ:(رَ-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رمېدل-

رمي:(رَ-مي)اسم- هغه کېږه زر چې زرګران پرې کالي ټانکه کوي-

رمي:(رهٔ-مي)اسم- واحد- مؤنث- رمه- نو- زوه-

رمے:(رَ-مے)کلمه- روغ- تندرست- دا تورے دَ روغ سره ونيلے شي-

رنج:(رَنج)اسم- واحد- مذکر- کړاؤ- تکليف- زحمت- درد- (م- فارسي)-

رنجړومه:(رَنج-ړُو-مه)اسم- واحد- مؤنث- رنجوني- رنجومه- نجړومه- رنجلومه- رنجوبي- رجړومه- وړه کڅوړه چې دَ سترګو رانجهٔ پکښې ساتلے شي-

رنجک:(رَن-جک)اسم- بارود- باروت- مېده باروت- دَ ټوپک مېده بارود-

رنجکانے:(رنج-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ رنجو تيږه- دَ اَنټي موني ډبره- هغه تيږه چې رانجهٔ ترې حاصلولے شي- (افغانستان)-

رنجکه:(رَن-جهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- چلواني- چلوني- چولاني- تانده- رنځکه- يو قسم ساګ- ډنډورے- تاندوله- تاندولے- تندوله-

رنجکي:(رَن-جه-کي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رنجکے-

رنجکے:(رَن-جه-کے)اسم- واحد- مؤنث- سينګړې- ډېرې- چمنه- رنجکي- دَ ټوپک دَ دارو کڅوړه- (۲)دَ رنجو يا دَ دارو بوتل-

رنجلومه:(رَنج-لُو-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رنجړومه-

رنجوني:(رَن-جُو-ني)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رنجړومه-

رنجوبي:(رَن-جُو-بي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رنجړومه-

رنجه:(رَن-جه رَن-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خرڅوړے- ريتاړه- تريشه- ليشوړه- ريتوړه- ليتاړه- وړه او نرۍ ټوټه- چيرړه- چيرړه- ترانګه- (۲)رخت- ټوټه- ټوکر- (۳)کالي- جامه- لباس-

رنجې رنجې:(رَن-جې-رَن-جې)اسمِ صفت- ختې ختې- ګارکيتې- ريښې ريښې-

رنځ:(رَنځ)اسم- ناروغي-.ناجوړي- زوږده ناروغي- (۲)کړاؤ- زحمت- رنج- تکليف- درد- مصيبت-

رنځ باريک:(رنځ-با-ريک)اسم- باريک رنځ- نرے رنځ- دق-

رنځړ:(رَن-ځړ)اسم- وګورئ رنځړهٔ-

رنځړهٔ:(رَنځ-ړهٔ)اسم- رنځړ- رانځړهٔ- ننځړهٔ- چوړيل- زرنه- زرنهٔ- لنځړهٔ- دَ لمنځې دَ ونې دَ جرړو تېل-

رنځړے:(رَن-ځهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- رنځور- بيمار- مريض- جمع رنځړي-

رنځغابنے:(رنځ-غا-بنے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ غوړو کښې پخېدونکې يو قسم کُلچه- (افغانستان)-

رنځکه:(رَن-ځهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګونګے- ډنډورے- دَ انګورو وږے- وښکولے- وښکالے- دَ انګورو ګنګورے- (۲)يو قسم ساګ چې دَ جوارو پهٔ پټو کښې راټوکيږي- (افغانستان)-

رنځل:(رَن-ځل)مصدر- رنځورول- ناروغه کول- رنځول-

رنځلے:(رَن-ځهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع رنځلي- مؤنث رنځلې- وګورئ رنځل-

رنځمن:(رنځ-مَن)اسمِ صفت- رنځور- بيمار- مريض-

رنځن:(رَن-ځن)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځل-

رنځنګ:(رَن-ځنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځل-

رنځنه:(رَن-ځهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځل-

رنځنے:(رَن-ځَ-نے)اسمِ صفت- رنځ زپلے- جمع رنځني-

رنځنهٔ:(رنځ-نهٔ)اسم- وګورئ رنځړهٔ-

رنځور:(رَن-ځُور)اسمِ صفت- رنځمن- رنځړے- ناروغه- ناجوړه- مريض- پهٔ مرض اخته-

رنځورتيا:(رَن-ځُور-تيا)اسم- (۱)ناروغتيا- (۲)خوارېدنه- خوارپاړ کېدنه- ناجوړتيا- دَ ناروغۍ لهٔ کبله وجود خوارېدنه-

رنځورغاړے:(رَن-ځُور-غا-ړے)اسمِ صفت- رنځېدلے- دائمي ناروغ- هغه څوک چې زوږده ناروغي لري- هغه څوک چې زيرزبېښلے او رنځور ډوله وي-

رنځورول:(رَن-ځُو-رَ-وَل)مصدر- ناروغه کول- ناجوړه کول- پهٔ رنځ اخته کول-

رنځورولے:(رَن-ځُو-رَ-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع رنځورولي- مؤنث رنځورولې- وګورئ رنځورول-

رنځورون:(رَن-ځُو-رَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځورول-

سرنځورونکے:(رَن-ځُو-رَ-وُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رنځورونکي- مؤنث رنځورونکې- وګورئ رنځورول-

رنځورونګ:(رَن-ځُو-رَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځورول-

رنځورونه:(رَن-ځُو-رَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځورول-

رنځوري:(رَن-ځُو-ري)اسم- ناروغي- مرض- ناجوړي- رنځ-

رنځورېدل:(رَن-ځُو-رې-دَل)مصدر- ناروغه کېدل- ناجوړه کېدل- پهٔ رنځ اخته کېدل- بيمارېدل-

رنځورېدلے:(رَن-ځُو-رې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع رنځورېدلي- مؤنث رنځورېدلې- وګورئ رنځورېدل-

رنځورېدن:(رَن-ځُو-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځورېدل-

رنځورېدنګ:(رَن-ځُو-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځورېدل-

رنځورېدنه:(رَن-ځُو-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رنځورېدل-

رنځورېدونکے:(رَن-ځُو-رې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رنځورېدونکي- مؤنث رنځورېدونکې- وګورئ رنځورېدل-

رنځورېدهٔ:(رَن-ځُو-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رنځورېدل-

رنځول:(رَن-ځَ-وَل)مصدر- (۱)کړول- ځورول- (۲)ناروغي وړدول- (۳)خبره وړدول- خبره ځنځول-

رنخولے:(رَن-خُ-وَهْ-لے)اسمِ مفعول- جمع رنخولی- مؤنث رنخولې- وګورئ رنخول-

رنخون:(رَن-خُ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رنخول-

رنخونکے:(رَن-خُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رنخونکی- مؤنث رنخونکې- وګورئ رنخل-

رنخونکے:(رَن-خُ-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع رنخونکی- مؤنث رنخونکې- وګورئ رنخول-

رنخونګ:(رَن-خُ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رنخول-

رنخونه:(رَن-خُ-وَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رنخول-

رنخوهٔ:(رَن-خُ-وَهْ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رنخول-

رنخه:(رَن-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ رنجه- (۲)رنجه- ریخے- ریخ- دَ ځاروی بهېدنه-

رنخېدل:(رَن-خې-دَل)مصدر- (۱)بیماری وُرِدېدل- (۲)کمزورېدل- خورېدل- زورېدل- (۳)یوه خبره یا موضوع وُرِدېدل- (۴)پهٔ نری رنځ اخته کېدل-

رنخېدلے:(رَن-خې-دَهْ-لے)اسمِ مفعول- جمع رنخېدلی- مؤنث رنخېدلې- وګورئ رنخېدل-

رنخېدن:(رَن-خې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رنخېدل-

رنخېدنګ:(رَن-خې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رنخېدل-

رنخېدنه:(رَن-خې-دَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رنخېدل-

رنخېدونکے:(رَن-خې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رنخېدونکی- مؤنث رنخېدونکې- وګورئ رنخېدل-

رنخېدهٔ:(رَن-خې-دَهْ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رنخېدل-

رند:(رند)اسم- واحد- مذکر- (۱)زیرک- خیرک- (۲)دروغلے- دروغژنکے- (۳)بې پروا- ازاد- لاقیده- مست- (۴)زړهٔ ور- زړور- تېز- جرأت لرونکے- چالاک- جمع رندان- (م- فارسی)-

رندار:(رن-دار)اسم- واحد- مؤنث- رنداره- ورندار- دَ ورور ښځه- بابی- جمع رنداراني-

رنداره:(رَن-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رندار-

رندکه:(رَن-دَهْ-که)اسم- واحد- مؤنث- داره- پشکه- تیندکه- دوره- دَ وینې یا اُبو پواره (داره)-

رنده:(رَن-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ ترکاڼی یوه آله چې لرګی پرې تورلے شی-

رندی:(رَن-دی)اسم صفت- (۱)زیرکی- خیرکی- (۲)دروغنه- حیله- (۳)بې پروائی- ازادی- لاقیدی- (۴)چالاکی- تېزی- زړهٔ ورتیا-

رنړ:(رَنړ)اسم- ارنړ- ارمنړه- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ ارمنړه-

رنړ:(رَنړ)اسم صفت- (۱)خرے- سرتمبه- پښې کلکونکے- (۲)خپلناکه- سرکش- ضدی- لهٔ خپلې خبرې نه نهٔ اوړېدونکے- (۲)اصرار کونکے- بیا بیا غښتونکے- مصر-

رنړه:(رَن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مړوښه- مېړوښه- دَ کونړې مقابل- (۲)غریبه- خواره- بې وزلې- دا کلمه دَ کونړې دَ کلمې سره یو ځائې هم استعمالیږی لکه کونړه رنړه-

رنړه:(رَن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- ارنړه- ارمنړه- دَ ارنړې تخم- جمع رنړې- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ ارمنړه-

رنړه:(رَن-ړه)اسم صفت- کاسیره- رنړی-

رنړی باز:(رَن-ړی-باز)اسمِ صفت- واحد- مذکر- پهٔ ړمو مئین- کنجر باز- جمع رنړی بازان-

رنړېدل:(رَن-ړې-دَل)مصدر- (۱)خرې کېدل- سرتمبه کېدل- سرتمبه کېدل- پښې خرې کېدل- پښې کلکېدل- شله کېدل- (۲)خپل کېدل- لهٔ خپلې خبرې یا غښتنې څخه نهٔ اوښتل- (۲)پهٔ تکرار سره غښتنه کېدل- (۴)مېړوښه کېدل-

رنړېدلے:(رَن-ړې-دَهْ-لے)اسمِ مفعول- جمع رنړېدلی- مؤنث رنړېدلې- وګورئ رنړېدل-

رنړېدن:(رَن-ړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رنړېدل-

رنړېدنګ:(رَن-ړې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رنړېدل-

رنړېدنه:(رَن-ړې-دَهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رنړېدل-

رنړېدونکے:(رَن-ړې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رنړېدونکي- مؤنث رنړېدونکې- وګورئ رنړېدل-

رنړېدهٔ:(رَن-ړې-دَهْ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رنړېدل-

رنړې:(رَن-ړې)اسم صفت- واحد- مؤنث- ګډېدونکې- ببسوا- فاحشه-

رنسانس:(رن-سانس)اسم- وګورئ رونسانس-

رنګ:(رنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لَون- دَ یو شی لهٔ ظاهره معلومېدونکے کېفیف- (۲)څېره- بڼه- شکل- قواره- (۳)طریقه- طرز- قاعده- (۴)کېفیت- حال- (۵)قسم- راز- ډول- طور- شان- (۶)رونق- بهار- جوبن- پرق- ښائست- (۷)نظیر- مثل- (۸)مزه- لُطف- (۹)دَ تاش دَ پاڼې (پتې) رنګ- جمع رنګونه-

رنګارنګ:(رنګ-ګا-رنګ)اسم- رنګ رنګ- ډول ډول- قسم قسم- راز راز- رقم رقم- رنګ پهٔ رنګ- مختلف-

رنګ باخته:(رنګ-باخ-ته)اسمِ صفت- رنګ الوتے- رنګ پهٔ بل رنګ شوے-

رنګ بدی:(رنګ-بَ-دی)اسم- بې عزتی- خراب نوم ګټنه-

رنګ بنګ:(رنګ-بنګ)اسمِ صفت- شوړ پوړ- سور پُور- ات پت- پهٔ وینو لړلے-

رنګ پنګ:(رنګ-پنګ)اسمِ صفت- پهٔ رنګ لړلے- پهٔ رنګ ککړ- لړلے- (افغانستان)-

ئ" (څی-رَل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

رنګ تړل:(رنګ-تَ-ړل)مصدر- خوندناکه فضا جوړول- رونق راوستل- جوړ برابرول-

رنګټ:(رنګ-ګټ)اسم- پۀ رونګه رونګه ژړا- دَ ناز ژړا-

رنګټے:(رَن-ګَ-ټے)اسم- واحد- مذکر- اورغالے- اوجاغ- اُجاق- نغرے- انګیټی- درې پښې لرونکے دَ اُسپنې نغرے-

رنګدار:(رنګ-دار)اسم صفت- رنګ لرونکے- رنګین-

رنګر:(رنګ-ګر)اسم صفت- رنګساز- رنګریز- رنګونکے- رنګ کونکے-

رنګریز:(رنګ-ریز)اسم- جامې رنګونکے- جمع رنګریزان- مؤنث رنګریزه-

رنګریزی:(رنګ-رې-زی)اسم- (۱)رنګ ورکونه- (۲)دَ رنګریز کسب- دَ رنګ ورکولو کار او پیشه-

رنګړ:(رنګ-ګړ)اسم صفت- (۱)مات ګډ- پربوتے- دَ باران سیلۍ لۀ کبله ملاست فصل- (۲)تار تار اژ دانه دانه ولاړ فصل- رنګے فصل-

رنګړے:(رنګ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- رنګے- ړینګے- رنګړ- ړانګے- ړنګے- هغه فصل چې ګڼ نۀ وی او بوټی ئې کمزوری وی-

رنګژړے:(رنګ-ژَه-ړے)اسم صفت- (۱)رنګ زیړے- خجل- خړ- ملامت- شرمنده- (۲- اسم)ملامتیا- خړتیا- خجلت- شرمندګی- (افغانستان)-

رنګ لړول:(رنګ-لَ-ړَ-ول)مصدر- رنګول-

رنګ ماتے:(رنګ-ما-تے)اسم صفت- رنګ الوتے- رنګ تښتېدلے- چې پۀ مخ ئې دَ وارخطایۍ علامې څرګندې وی-

رنګمال:(رنګ-مال)اسم- هغه څوک چې دَ رنګ ورکولو کسب کوی- (افغانستان)-

رنګوټ:(رنګ-ګوټ)اسم- رنګروټ- رکروټ- نوے برتی شوے سپاهی-

رنګ و راج:(رنګ-وُ-راج)اسم صفت- بهره خوشحالی- اسودګی- مالداری-

رنګول:(رنګ-ګ-ؤل)مصدر- (۱)رنګ ورکول- دَ رنګ په ذريعه دَ یو څیز بنیادی حیثیت بدلول- (۲)په دَعا ښۀ کول- (۳)مالدارول- مالداره کول- (۴)پۀ چا بهر احسان کول-

رنګولے:(رَنګ-ګ-وۀ-لے)اسم مفعول- جمع رنګولی- مؤنث رنګولې- وګورئ رنګول-

رنګون:(رَنګ-ګ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ رنګول-

رنګونکے:(رَنګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- جمع رنګونکی- مؤنث رنګونکې- وګورئ رنګول-

رنګونګ:(رَنګ-ګ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رنګول-

رنګونه:(رنګ-ګ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رنګول-

رنګه:(رنګ-ګه)اسم- (۱)رنګدار- رنګ لرونکے- (۲)طریقه- لاره-

رنګی:(رنګ-ګی)اسم- (۱)رنګه- رنګداره- (۲)ښولی- رنګیز- رنګیڅ- (۳)رنګریزی- دَ رنګریزی کسب- دَ رنګولو ښول یا طریقه-

رنګیا:(رنګ-یا)اسم صفت- رنګین- ښکلے-

رنګیڅ:(رنګ-ګیڅ)اسم صفت- ښکلے ښولی- ښائسته- رنګیز- رنګداره- رنګه-

رنګیز:(رنګ-ګیز)اسم صفت- وګورئ رنګیڅ-

رنګین:(رنګ-ګین)اسم صفت- (۱)رنګارنګ- رنګداره- (۲)ښکلے- ښائسته- (۳)رنګه-

رنګینی:(رنګ-ګی-نی)اسم- مؤنث- (۱)سینګار- ښول- ښائست- (۲)خوش مزاجی-

رنګېدل:(رنګ-ګې-دَل)مصدر- (۱)رنګ اخستل- رنګ کېدل- (۲)پۀ دعا ښائسته کېدل-

رنګېدلے:(رَنګ-ګې-دۀ-لے)اسم مفعول- جمع رنګېدلی- مؤنث رنګېدلې- وګورئ رنګېدل-

رنګېدن:(رَنګ-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ رنګېدل-

رنګېدنګ:(رَنګ-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ رنګېدل-

رنګېدنه:(رَنګ-ګې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رنګېدل-

رنګېدونکے:(رَنګ-ګې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع رنګېدونکی- مؤنث رنګېدونکې- وګورئ رنګېدل-

رنګېدۀ:(رنګ-ګې-دۀ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رنګېدل-

رنګی:(رَنګ-ګی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ ګڼ ضد- نری نری- دانه دانه- (۲)چې ګڼې نۀ وی-

رنګے:(رنګ-ګے)اسم صفت- (۱)رنګړ- رنګړے- دَ ګڼ ضد- (۲)لړ او لړې لړې-

رنه:(رَ-نه/رۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- مثلث ښوله پټے- درې ګُټه پټے- درې کُنجه پټے- (افغانستان)-

رڼ:(رَڼ)اسم- اومه څرمن- کچه څرمن- خامه څرمن- بې آشه څرمن-

رڼا:(رَ-ڼا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ تیرې ضد- روښنائی- رڼائی- (۲-صفت)روښانه- وروڼه- رڼه- وروڼ- روڼ- جمع رڼاګانې-

رڼاګی:(رَ-ڼا-ګی)اسم- واحد- مؤنث- شین غارے- یو وړه خړه مرغۍ-

رڼائی:(رَ-ڼا-ئی)اسم- مؤنث- (۱)روڼائی- روڼوالے- (۲)اسودګی- سوکالی- ارامی-

رڼغونی:(رَ-نه-غو-نې)اسم صفت- واحد- مؤنث- تته رڼا- کمزورې رڼا-

رڼک:(رَ-ڼک)اسم- واحد- مذکر- بلپ- ګروپ- باتی- قُمقمه- دَ رڼا یا بریښنا هغه باتی چې پرق پروق ترې خېژی- (افغانستان)-

رڼکے:(رَ-ڼ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوړ خوا ته راوتلے هډوکے- دَ غوړ شا ته راوتلے هډوکے- جمع رڼکی- (افغانستان)-

رڼکے:(رَ-ڼ-کے)اسم صفت- (۱)ځلېدونکے- سپین- روڼ- (۲)ښکلے- ښائسته-

رڼکی:(رَ-ڼ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- بلورینه مالګه- دَ شیشې پۀ شان پرقېدونکې مالګه-

رڼوبے:(رَ-نو-بے)اسم- واحد- مذکر- رڼې اُبۀ- روڼې اُبۀ- مقطرې اُبۀ- پاکې اُبۀ- جمع رڼوبی-

رڼوځایْ:(رَ-نو-ځایْ)اسم- رڼوخے- څرو- رڼا- هغه ځایْ چې کوچیان پۀ

خپلو کېږدیو کښې دَ رڼا دَ پاره پکښې اور بلوی- (افغانستان)-

رښوخے:(رَ-ښو-خے)اسم- واحد- مذکر- جمع رښوخي- وُکورئ رښوخاێ-

رَښوکے:(رَ-ښو-کے)اسم- واحد- مذکر- ټپکہ- تندرکے- اجلخے- ستر- ړېږونکے- (افغانستان)-

رښوکے:(رَ-ښو-کے)اسم- واحد- مذکر- ابرک- ابرق- سپرکہ- شکے گل- شګوگل- جمع رښوکي-

رڼول:(رَ-ڼَ-وَل)مصدر- (۱)روښانہ کول- رڼا کول- (۲)پاکول- صفا کول-

رڼول:(رَ-ڼَ-وَل)مصدر- نړول- (۱)ورانول- دَ دېوال یا کوټې ارادتاً غرځول- (۲)الړول- رابیلول- رالتهول- لوړول- راشوکول-

رڼولے:(رَ-ڼَ-وہ-لے)اسم مفعول- جمع رڼولي- مؤنث رڼولې- وُکورئ رڼول-

رڼون:(رَ-ڼَ-وَن)حاصلِ مصدر- وُکورئ رڼول-

رڼونګ:(رَ-ڼَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وُکورئ رڼول-

رڼونہ:(رَ-ڼَ-وۂ-نہ)حاصلِ مصدر- وُکورئ رڼول-

رنہ:(رَ-نہ)اسم- واحد- مؤنث- دَ روڼ مؤنث شکل- روڼہ- شفافہ-

رنہ:(رَ-نہ)اسم- واحد- مؤنث- ریچہ- دَ سپږې اګۍ یا تُخم- (افغانستان)-

رنېدل:(رَ-نې-دَل)مصدرِ لازم- نړېدل- (۱)ورانېدل- چپہ کېدل- (۲)راجُدا کېدل- شوکېدل- لوړېدل- شکېدل- رالتهېدل- (افغانستان)-

رنېدلے:(رَ-نې-دۂ-لے)اسمِ مفعول- جمع رنېدلي- مؤنث رنېدلې- وُکورئ رنېدل-

رنېدن:(رَ-نې-دَن)حاصلِ مصدر- وُکورئ رنېدل-

رنېدنګ:(رَ-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وُکورئ رنېدل-

رنېدنہ:(رَ-نې-دۂ-نہ)حاصلِ مصدر- وُکورئ رنېدل-

رنېدونکے:(رَ-نې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع رنېدونکي- مؤنث رنېدونکې- وُکورئ رنېدل-

رنېدۂ:(رَ-نې-دۂ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغہ- وُکورئ رنېدل-

رنے:(رَ-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ بوټي جرړه چې پۂ دارو کښې پکارولے شي-

رو:(رو)اسم- قراره- سوکہ- ورو- پۂ سیالہ- دَ ورو بل قرأت-

رو:(رو)اسم- (۱)نرى لاره- لاره- (۲)انېوخر- انهو- یو قسم لوبہ- (۲)روان- جاری- (۴)تجویز-

رَوا:(رَ-وا)اسم- (۱)حلال- دَ حرام ضد- جائز- مشروع- (۲)مناسب- وړ-

روا:(رَ-وا)اسم- دَ ورا مغفن شکل- وُکورئ ورا-

روابط:(رَ-وا-بِط)اسم- تعلقات- (م- عربی)-

روات:(رَ-وات)اسم - روایت کونکے- راوی- (م- عربی)-

رواج:(رِ-واج)اسم- (۱)دود- دستور- رسم- لاره- باب- چلند- (۲)ضابطہ-

رواجول:(رِ-وا-جه-وَل)مصدر- جاری کول- رواج ورکول-

رواجولے:(رِ-وا-جه-وۂ-لے)اسم مفعول- جمع رواجولي- مؤنث رواجولې- وُکورئ رواجول-

رواجون:(رِ-وا-جه-وَن)حاصل مصدر- وُکورئ رواجول-

رواجونکے:(رِ-وا-جه-وون-کے)اسم فاعل- جمع رواجونکي- مؤنث رواجونکې- وُکورئ رواجول-

رواجونګ:(رِ-وا-جه-وَنګ)حاصل مصدر- وُکورئ رواجول-

رواجونہ:(رِ-وا-جه-وۂ-نہ)حاصلِ مصدر- وُکورئ رواجول-

رواجی:(رِ-وا-جي)متعلقِ فعل- دَ دود- دَ رواج- رواج تہ منسوب- مروج- شائع-

رواجېدل:(رِ-وا-جې-دَل)مصدر- بابېدل- عامېدل- رواج موندل- دود کېدل- شائع کېدل-

رواجېدلے:(رِ-وا-جې-دۂ-لے)اسم مفعول- جمع رواجېدلي- مؤنث رواجېدلې- وُکورئ رواجېدل-

رواجېدن:(رِ-وا-جې-دَن)حاصل مصدر- وُکورئ رواجېدل-

رواجېدنګ:(رِ-وا-جې-دَنګ)حاصل مصدر- وُکورئ رواجېدل-

رواجېدنہ:(رِ-وا-جې-دۂ-نہ)حاصلِ مصدر- وُکورئ رواجېدل-

رواجېدونکے:(رِ-وا-جې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع رواجېدونکي- مؤنث رواجېدونکې- وُکورئ رواجېدل-

رواجېدۂ:(رِ-وا-جې-دۂ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری او دَ واحد غائب صیغہ- وُکورئ رواجېدل-

رواخ:(رَ-واخ)اسم- نماښام تہ نژدې وخت-

روادار:(رَ-وا-دار)اسم- لورزونکے- پېرزو کونکے- د پېرزو خاوند-

رواداری:(رَ-وا-دا-ري)اسم- لورینہ- پېرزوئنہ- لور-

روارو:(رَ-وا-رو)اسم- دَ خلقو کثرت- دَ ډېرو خلقو تګ راتګ-

روارہ:(رَ-وا-رہ)اسمِ صفت- دَ بد ویونکي پۂ مقابل کښې صبر او تحمل کونکے-

رواش:(رَ-واش)اسم- یو قسم بوټے چې جرړې ې دَ جلابو دَ پاره پکارولے شي-

رواشہ بوډۍ:(رَ-وا-شہ-بوډ-ۍ)اسم- ښېټے- پاستے- چپاتے- لویہ، نرۍ او پلنہ بوډۍ-

روافض:(رَ-وا-فِض)اسم- دَ رافض جمع- وُکورئ رافض-

روان:(رَ-وان)اسم- (۱)چالان- تلونکے- پۂ حرکت کښې- (۲)بهاند- جاري-

روانول:(رَ-وا-نَ-وَل)مصدر- چالانول- حرکت کښې رواستل- (۲)بهول- بیول- جاری کول-

روانولے:(رَ-وا-نَ-وۂ-لے)اسمِ مفعول- جمع روانولي- مؤنث روانولې- وُکورئ روانول-

روانون:(رَ-وا-نَ-وَن)حاصل مصدر- وُکورئ روانول-

روانونکے:(رَ-وا-نَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع روانونکي- مؤنث روانونکې- وُکورئ روانول-

روانونک:(ر-وا-ن-ونک)حاصلِ مصدر- وګورئ روانول-

روانونه:(ر-وا-ن-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ روانول-

روانوۀ:(ر-وا-ن-وۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ روانول-

روانه:(ر-وا-نه)اسم- واحد- مؤنث- پروانه- فرمانه- استولے شوے-

رواني:(ر-وا-ني)اسم- بهېدنه-

روانېدل:(ر-وا-نې-دل)مصدر- (۱)چالانېدل- متحرکه کېدل- (۲)بهېدل- بيېدل- جاري کېدل- (۳)تلل- حرکت کول-

روانېدلے:(ر-وا-نې-دۀ-لے)اسم مفعول- جمع روانېدلي- مؤنث روانېدلې- وګورئ روانېدل-

روانېدن:(ر-وا-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ روانېدل-

روانېدنګ:(ر-وا-نې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ روانېدل-

روانېدنه:(ر-وا-نې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ روانېدل-

روانېدونکے:(ر-وا-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع روانېدونکي- مؤنث روانېدونکې- وګورئ روانېدل-

روانېدۀ:(ر-وا-نې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ روانېدل-

روايت:(ر-وا-يت)اسم- واحد- مذکر- (۱)خبرې نقل کونه- ذکر- بيان- حکايت- (۲)قصه- جمع روايتونه-

روايتي:(ر-وا-يه-تي)اسم- دَ روايت- پۀ روايت مربوط- نقلي- دَ نقل-

روب:(روب)اسم- (۱)عزت- ابرو- آب- (۲)پرتم- شان و شوکت- دبدبه- (۲)سام- ويره- بېره- اثر- (افغانستان)-

روبا:(رو-باه)اسم- واحد- مؤنث- لومبړه- سپلمه- تروړي-

روبرو:(رو-به-رو)صفت- مخامخ- مخ پۀ مخ-

روبکار:(رو-ب-کار)اسم - دَ حاکم پۀ مخکښې دَ فيصلې ليکلو کاغذ مخامخ کېدنه- (م- فارسي)-

روپندے:(رو-پن-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ زنانو يو پسول-

روپوټي:(رو-پو-ټي)اسم تصغير- روپاټي- روپکه- دَ سپکاوي دَ پاره روپۍ ته وئيلے شي-

روپۍ:(رو-پۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- دَ پاکستان او هندوستان دَ سکې نوم- شپاړس انې- سل پېسې- روپيه- دَ حکومت دَ خزانې نه جاري شوې سکه چې پرې پېرل پلورل کولے شي-

روټ:(روټ)اسم صفت- روټاک- بې پرزا- خوابدے-

روټ:(روټ)اسم، لويه، ګردې، پنډه، خوږه او غوړې لرونکې ډوډۍ چې پۀ داش کښې يا دَ لاندې باندې تودوخې پۀ وسيله سره پخيږي او اوړه يې دَ غوړو او چينو سره اُخښلے شي-

روټاک:(رو-ټاک)اسم صفت- (۱)بې باکه- بې پروا- (۲)شوم- کنجوس- سخت- ممسک- ټينګ-

روټاکتوب:(رو-ټاک-توب)اسم- روټاکوالے- بې باکي- بې پروائي- (۲)شومتوب- کنجوسي- سختي- ممسکي- ټينګوالے-

روټاکوالے:(رو-ټاک-وا-لے)اسم- وګورئ روټاکتوب-

روټه:(رو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- اُربشينه ډوډۍ- دَ اُربشو ډوډۍ- هغه ډوډۍ چې دَ اُربشو دَ اوړو نه پخولے شي-

روټۍ:(رو-ټۍ)اسم- واحد- مؤنث- ډوډۍ- مړۍ- ټيکله- ککوړے- نغن-

روټۍ غپ:(رو-ټۍ-غپ)اسم- ډوډۍ غپ- حريص- ارواوړے- وږسترګے-

روجائي:(رو-جا-ئي)اسم- هغه څادر يا لويه کپړه چې دَ بسترې يا کټ دَ پاسه غوړولے کيږي-

روخان:(رو-خان)اسم- مکن- هغه سورے چې دَ کوټې پۀ چت کښې دَ لوګي دَ وتلو او دَ نمر دَ رڼا دَ راننوتلو دَ پاره جوړ شوے وي- جمع روخانونه-

روخباړه:(روخ-با-ړه)اسم- دَ ورخباړه يو قرأت- روزانه مزدوري-

روخبالا:(روخ-با-لا)اسم- (۱)ورخبالا- (۲)وده- نشونما- غوړېدنه- (افغانستان)-

روخ تېرے:(روخ-تې-رے)اسم صفت- ورخ تېرے- ورخ تېرونکے- کار کسب نۀ کونکے- (افغانستان)-

روخ ګرخے:(روخ-ګر-خے)اسم صفت- ورخ ګرخ- بدبخته- بدمرغه- هغه څوک چې ورخ يې ګرځېدلې وي- (افغانستان)-

روچه:(رو-چه)اسم- واحد- مذکر- يو قسم واړۀ واړۀ انګور-

روح:(روح)اسم- (۱)ساه- ارواح- (۲)زړۀ- (۲)نيت- جمع روحونه-

روح الامين:(رو-حُل-اَ-مين)اسم- (۱)جبرائيل عليه السلام- (۲)هغه ملائکه چې پيغمبر ته به يې وحي راوړله-

روح القدس:(رو-حُل-قُ-دُس)اسم- (۱)جبرائيل عليه السلام- (۲)دَ عيسايانو پۀ اصطلاح هغه روح چې پۀ مريم بي بي کښې پوکړے شوے وۀ او دَ عيسٰی عليه السلام دَ پېدائش موجب شو- (۳)رحماني نفس- (م- عربي)-

روح الله:(رو-حُل-لا)اسم صفت- دَ حضرت عيسٰی عليه السلام لقب-

روحاني:(رُو-حا-ني)اسم- دَ روح سره متعلق- پاک- مقدس- (م- عربي)-

روحانيت:(رو-حا-ني-يت)اسم- روحاني توب- مذهبي توب- دَ روح سره متعلق خاصيت يا طاقت-

روحي:(رو-حي)اسم- (۱)دَ روح- پۀ روح پورې مربوط- دَ ارواح- (۲)شعور- دَ کروړو-

روحيات:(رو-حي-يات)اسم- جمع (۱)سيکالوجي- (۲)جُرأت- زړۀ ورتيا- مورال- (افغانستان)-

روحياتي:(رُو-حي-يا-تي)اسم- دَ روح سره متعلق- پۀ روحياتو پورې مربوط-

روحيه:(رُو-حي-يه)اسم- (۱)جرأت- (۲)اوضعه- وضعيت-

روخ:(روخ)اسم- (۱)مخ- مقابله- مخامخ- (۲)برابري- ورخ سمېدنه- (۳)رُخ- پۀ شطرنج کښې هغه ګوټ (دانه) چې پۀ کُنج کښې ايښودے شي- (افغانستان)-

زبر (ځ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ۀ (ز-ړه)، ۀ (پو-ښې-دۀ)

روخي:(رو-خي)اسم- دَ قبلې لورے- دَ قبلې پلو- دَ قبلې خوا-

رود:(رود)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خوړ- لګړ- سم- وړوکے سیند یا خوړ چې اُبهٔ پکښې بهیږي- (۲)سیند- سین- دریاب- بحر- جمع رودونه- (م- فارسی)-

رودبار:(رود-بار)اسم- (۱)دَ سیند- دَ رود- پهٔ رود پورې مربوط- (۲)هغه زمکه چې دَ رود لاندې وی یا لهٔ رود نه اُبیږي- (۳)هغه ځاے چې پکښې کښې ولې یا نهرونه بهیږي-

رودخانه:(رود-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سیند- (۲)دَ سیند دَ وتلو ځاے- (۳)خوړ- جمع رودخانې-

رودل:(رو-دل)مصدر- (۱)رول- رودل- تے رول- چوپل- (۲)خبېښل- (۳)رېبل- لوکول-

رودلے:(رو-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رودلی- مؤنث رودلې- وګورئ رودل-

رودن:(رو-دن)حاصل مصدر- وګورئ رودل-

رودنګ:(رو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ رودل-

رودنه:(رو-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ رودل-

رودونکے:(رو-دون-کے)اسم فاعل- جمع رودونکی- مؤنث رودونکې- وګورئ رودل-

رودونے:(رو-دو-نے)اسم- واحد- مذکر- بې موره وَرے- هغه ورے چې مور ئې مړه وی-

روده:(رو-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ موسیقۍ یوه آله- جمع رودې-

روده:(رو-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لاره- لیاره- لار- سړک- (۲)نښه- نښانه- نښکه- علامه- اثر- جمع رودې- (افغانستان)-

رودهٔ:(رو-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رودل-

رودی:(رو-دی)اسم- هغه زمکه چې دَ سیند دَ اُبو نه سېرابیږي-

رودے:(رو-دے)اسم- واحد- مذکر- اموخته- بلد-

روړه:(رو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لویه کولمه- غټه کولمه- انړ- (۲)دَ پوستکی یا بدن دَ پاسه ټول شوے خیرے-

روړه مست:(رو-ړه-مست)اسم صفت- (۱)چړګر- فقیر- ګداګر- ذیپه خور- چړ غښتونکے- (۲)خوار کبرژن- هغه څوک چې وی خوار او خبرې دَ مړو کوی-

روړے:(رو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم ساګ- (۲)یو قسم ټوپک-

رو رو:(رو-رو)اسم صفت- (۱)ژر ژر- وندے وندے- چټک چټک- پهٔ منډه منډه- متے متے- (۲)ورو ورو- پهٔ مزه مزه- سوکه سوکه- قلار قلار-

روړ:(روړ)اسم- پوخوالے- دَ فصل یا مېوی پخېدنه-

روړل:(رو-ړل)مصدر- سره پېچل- غښتل-

روړلے:(رو-ړهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روړلی- مؤنث روړلې- وګورئ روړل-

روړن:(رو-ړن)حاصل مصدر- وګورئ روړل-

روړنګ:(رو-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ روړل-

روړنه:(رو-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ روړل-

روړونکے:(رو-ړون-کے)اسم فاعل- جمع روړونکی- مؤنث روړونکې- وګورئ روړل-

روړه:(رو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کلک- سخت- منجمد- ټینګ- (۲)وچکالي- سوکړه- خشکالي- (۳)مات شوی کاڼی-

روړه:(رو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- ګبوله پوړی- ګړه وړه پوړی-

روړه:(رو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- انګولا- انګلیدا- کوله- کولې- دَ سپی اوړد اونګارے چې خلق ئې سپېرهٔ ګڼي- جمع روړې-

روړی ټک:(رو-ړی-ټک)اسم- واحد- مذکر- کاڼی ماتونکے سړے- هغه څوک چې دَ سړکونو جوړولو کاڼی ماتوی-

روړیا کوړیا:(روړیا-کوړیا)اسم- ټوکړې ټوکړې- عام طور سره دَ ښېړو دَ پاره استعمالولے شی-

روزان:(رو-زان)اسم- واحد- مذکر- وتکے- وت- مګ- موری- (م- فارسی)-

روزانه:(رو-زا-نه)اسم- واحد- مؤنث- ورځنے- دَ ورځې- روزمره- یومي-

روزګار:(روز-ګار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ورځو مجموعه- ژوند- (۲)زمانه- نړی- دنیا- (۳)ګوزاره- ګذران- (۴)فصل- موسم- (۵)کسب- کار- پېشه- (م- فارسی)-

روزل:(رو-زل)مصدر- تربیه کول- پالل-

روزلے:(رو-زهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روزلی- مؤنث روزلې- وګورئ روزل-

روزمانه:(روز-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- کونړ- دَ حیواناتو دَ لنګتون وخت- جمع روزمانې- (افغانستان)-

روزن:(رو-زن)حاصل مصدر- وګورئ روزل-

روزنامه:(روز-نا-مه)اسم- روزانه وتونکے اخبار- جمع روزنامې-

روزنتون:(رو-زن-تون)اسم- دَ روزنې ځاے- زرکتون- تربیت ګاه- (افغانستان)-

روزنګ:(رو-زنګ)حاصل مصدر- وګورئ روزل-

روزنه:(رو-زهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ روزل-

روزونکے:(رو-زون-کے)اسم فاعل- جمع روزونکی- مؤنث روزونکې- وګورئ روزل-

روزونے:(رو-زو-نے)اسم فاعل صفت- (۱)دَ روزنې- دَ تربیې- (۲)تربیه کونکے- روزونکے-

روزه:(رو-زه)اسم- واحد- مؤنث- روژه-

روزه دار:(رو-زه-دار)اسم- روژه دار- روژه ساتونکے-

روزی:(رو-زی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خورے- رزق- خواړهٔ- (۲)قسمت- برخه-

روزی خور:(رو-زی-خور)اسم صفت- قسمت خور یا دَ برخې خاوند-

روزی رسان:(رو-زی-ر-سان)اسم صفت- روزی ورکونکے- روزی رسونکے- رازق- څښتن تعالی-

ئ (څې-ړل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

روزینه:(رو-زی-نه)اسم- واحد- مؤنث- توښه- ورځنی خواړهٔ- ورځنی جیره- دَ ښولې ورځې معاوضه-

روژاتی:(رو-ژا-تي)اسم- واحد- مذکر- روژتی- روژه نیونکے- روژه ساتونکے-

روژتی:(رو-ژَ-تي)اسم- وګورئ روژاتی-

روژنے:(رو-ژ-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- روژه کالے- همېشه روژه نیونکے- هغهٔ څوک چې تل يُ روژه وي-

روژه:(رو-ژه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)روزه- رمضان- دُ هجری کال نهمه میاشت چې دَ شوقدر نه زروستو راځي- (۲)دَ بوزه ضد-

روژه پوژه:(رو-ژه-پو-ژه)اسم- الې خلې- نارې سُورې- هلې خلې-

روژه دار:(رو-ژه-دار)اسم صفت- روزه دار- روژتی- روژه نیونکے-

روژه کالے:(رو-ژه-کا-لے)اسم صفت- هغه څوک چې دُ کال دَ سر نه تر اخره پورې روژې نیسی- روژنے-

روژه مات:(رو-ژه-مات)اسم- روژه ماتے- دُ روژې دَ ماتولو وخت او سامان- (افغانستان)-

روژه ماتے:(رو-ژه-ما-تے)اسم- واحد- مذکر- جمع روژه ماتی- وګورئ روژه مات-

روږد:(روږد)اسم صفت- روږدے- اموخته- عادی- بلد- اشنا-

روږدتوب:(روږد-توب)اسم- وګورئ روږدوالے-

روږدوالے:(روږد-وا-لے)اسم- روږدېدنه- اموخته کېدنه- اموختوب- روږدتوب- بلدتیا- ولدېدنه- بلدېدنه- بلدوالے-

روږدول:(روږ-د-ول)مصدر- روږدے کول- بلدول- عادت کول- عادی کول- اموخته کول- ولدول- اشنا کول-

روږدولے:(روږ-دَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روږدولی- مؤنث روږدولې- وګورئ روږدول-

روږدون:(روږ-دَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ روږدول-

روږدونکے:(روږ-د-وون-کے)اسم فاعل- جمع روږدونکی- مؤنث روږدونکې- وګورئ روږدول-

روږدونګ:(روږ-د-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ روږدول-

روږدونه:(روږ-دَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ روږدول-

روږدوهٔ:(روږ-دَ-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ روږدول-

روږدېدل:(روږ-دې-دل)مصدر- عادت کېدل- اموخته کېدل- ولدېدل- بلدېدل- اشنا کېدل-

روږدېدلے:(روږ-دې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روږدېدلی- مؤنث روږدېدلې- وګورئ روږدېدل-

روږدېدن:(روږ-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ روږدېدل-

روږدېدنګ:(روږ-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ روږدېدل-

روږدېدنه:(روږ-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ روږدېدل-

روږدېدونکے:(روږ-دې-دون-کے)اسم فاعل- جمع روږدېدونکی- مؤنث روږدېدونکې- وګورئ روږدېدل-

روږدېدهٔ:(روږ-دې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ روږدېدل-

روږدے:(روږ-دے)اسم صفت- ولد- بلد- عادی- اموخته- اشنا-

روړی بوړی:(رو-ړی-بُو-ړی)اسم- خچ پچ- ذرې ذرې- مېده مېده- ریچې ریچې- څیرې ویرې- څیرې پیرې- پارچه پارچه- ټوټه ټوټه-

روسپی:(روس-پي)اسم صفت- لنډی- لولی- بدلمنه- فاحشه-

روستائی:(روس-تا-ئي)اسم صفت- بانډیسی- ناپوهه-

روسی:(رُو-سي)اسم- روسی ژبه-

روسیاه:(رُو-سیاه)اسم صفت- تورمخے- مخ تورن- (م- فارسی)-

رُوسے:(رُو-سے)اسم- واحد- مذکر- دَ روس وُسېدونکے- جمع روسیان-

روش:(رُ-وش)اسم- (۱)چلند- چلښت- ګوذاره- چلېدنه- یون- رفتار- (۲)دود- دستور- طریقه- (م- فارسی)-

روشن:(رو-شن)اسم-(۱)روښانه- رڼا کونکے- ځلان- ځلاند- (۲)واضحه- صفا- ظاهر- (م- فارسی)-

روشن دماغ:(رو-شن-د-ماغ)اسم- دَ روښانه دماغ څښتن- دَ وچت فکر لرونکے- هوښیار- عاقل- (۲)نسوار-

روشن فکر:(رو-شن-ف-کر)اسم- روښانه فکر لرونکے- جمع روشنفکران- (م- فارسی)-

روشنی:(روش-ني)اسم صفت- رڼائی- روښنائی- (م- فارسی)-

روشے بوټے:(رو-شے-بُو-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ شپیشتو، رشکې غنډې غرنیز بوټے- جمع روشی بوټی-

روښان:(رو-ښان)صفت- (۱)روڼ- ځلاند- (۲)څرګند- ښکاره-

روښانتوب:(رو-ښان-توب)اسم- روښنائی- رڼائی- روښانتیا-

روښانتیا:(رو-ښان-تیا)اسم- وګورئ روښانتوب-

روښاند:(رو-ښاند)اسم صفت- (۱)روښان اندے- روشن فکر- پوه- منور- (۲)دَ مترقی پوهې خاوند-

روښانول:(رو-ښا-نَ-وَل)مصدر- (۱)رڼا کول- رڼول- (۲)ښکاره کول- جوتول- عیانول-

روښانولے:(رو-ښا-نَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روښانولی- مؤنث روښانولې- وګورئ روښانول-

روښانون:(رو-ښا-نَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ روښانول-

روښانونکے:(رو-ښا-نَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع روښانونکی- مؤنث روښانونکې- وګورئ روښانول-

روښانونګ:(رو-ښا-نَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ روښانول-

روښانونه:(رو-ښا-نَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ روښانول-

روښانوهٔ:(رو-ښا-نَ-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب

صيغه- وګورئ روښانول-

روښانه:(رو-ښا-نه)اسمِ صفت- وګورئ روښان-

روښاني:(رو-ښا-ني)اسم- دَ روښان- روښان ته منسوب-

روښانېدل:(رو-ښا-نې-دَل)مصدر- (۱)رڼا کېدل- (۲)ښکاره کېدل- جوتېدل- څرګندېدل- (۳)ځلېدل-

روښانېدلے:(رو-ښا-نې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع روښانېدلی- مؤنث روښانېدلې- وګورئ روښانېدل-

روښانېدن:(رو-ښا-نې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ روښانېدل-

روښانېدنګ:(رو-ښا-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ روښانېدل-

روښانېدنه:(رو-ښا-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ روښانېدل-

روښانېدونکے:(رو-ښا-نې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع روښانېدونکی- مؤنث روښانېدونکې- وګورئ روښانېدل-

روښانېدهٔ:(رو-ښا-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ روښانېدل-

روښنائي:(روښ-نا-ئي)اسمِ صفت- (۱)رڼائي- نُور- (۲)ځلا- ځل-

روښه:(رو-ښه)اسم- واحد- مؤنث- حلوا- الوا- وربشه- وبرلې- (افغانستان)-

روښه وال:(رو-ښه-وال)اسم- روښے- حلوائي- هغه څوک چې حلوا پخوی يا دَ حلوا دَ خرڅولو کار کوی- (افغانستان)-

روښه ونه:(رو-ښه-وهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کېلې وُنه- (افغانستان)-

روښے:(رو-ښے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ روښه وال- جمع روښي-

روضه:(رو-ضه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)باغ- بڼ- (۲)ګلزار- ګلستان- (۳)شنېلے- سبزه زار- شنه- مزار- زيارت- قبر- دَ ولی الله قبر- (م- عربی)-

روغ:(روغ)اسمِ صفت- (۱)جوړ- سالم- صحتمند- تندرست- سم- (۲)صادق- بې جنجاله- پهٔ تجارتی چارو کښې روغ-

روغاني:(رو-غا-ني)اسم- واحد- مؤنث- دَ تنور پراټه- روغني-

روغبړ:(روغ-بړ)اسم- بړه ګړه- ستړی مشی- جوړ تازه- روغ جوړ- دَ دوؤ کسانو يا زياتو کسانو مخامخ کېدو پهٔ وخت دَ لاس ورکولو يا غېږ ورکولو پهٔ طرز کښې دَ جوړ ناجوړ پښتنه او خبرې اترې-

روغتوب:(روغ-توب)اسم- رغوالے- روغتيا- جوړوالے- جوړتوب- صحت- جوړښت- دَ وجود دَ روح او اعصابو سلامتی-

روغتون:(روغ-تون)اسم- شفاخانه- دَ بيمارانو دَ علاج او دَ دارو درملو ځائې- (افغانستان)-

روغتيا:(روغ-تيا)اسم- وګورئ روغتوب-

روغتياپال:(روغ-تيا-پال)اسم- دَ عامې روغتيا هغه مامور چې دَ ښار او خواوشا پهٔ موټلونو، هټيو او کوڅو کښې دَ خوراکې شيزونو څارنې دنده لری- (افغانستان)-

روغ جوړ:(روغ-جوړ)اسم- روغ رمټ- بالکل روغ- بيخی روغ- صحيح سالم- روغ رمے-

روغښے:(روغ-ښے)اسم- واحد- مذکر- هسپتال- روغتون- (افغانستان)-

روغ رمټ:(روغ-رَ-مټ)اسم صفت- وګورئ روغ جوړ- مؤنث روغه رمټه-

روغ رمټه:(روغ-رَ-مَ-ټه)اسم صفت- (مرکب)- روغ رمټ- درست- صحيح سالم- ټول ټال-

روغ رمے:(روغ-رَ-مے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ روغ جوړ- مؤنث روغ رمه- جمع مؤنث روغ رمې-

روغ موټ:(روغ-موټ)اسم صفت- روغ رمټ- روغ جوړ- جګ جوړ- صحت ياب-

روغني:(رو-غه-ني)اسم- (۱)روغن دار- پهٔ تنور پخ شوې هغه ډوډۍ چې پهٔ مېنځ کښې يې غوړی اچولے شوے وی- روغني- روغاني- (۲)خوږه روټی-

روغنيات:(رو-غ-ني-يات)اسم- ګريس- تېل- غوړی- غوړ لرونکې څيزونه-

روغ نيتي:(روغ-نيه-تي)اسم- اخلاص- مينه- پاک نيت- صداقت-

روغ نيتے:(روغ-نيه-تے)اسم صفت- واحد- مذکر- سپين زړے- پاک زړے- اخلاصمن- سپين نيتے- سپين ږاګے- هغه څوک چې نيت يې پاک وی او دَرغلی پکښې نهٔ وی-

روغني:(رو-غه-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ روغني-

روغوالے:(روغ-وا-لے)اسم- وګورئ روغتوب-

روغول:(رو-غه-وَل)مصدر- (۱)جوړول- شفا ورکول- ښهٔ کول- سازول- (۲)سمول- ترميمول- (۳)پخلا کول- جوړه راوستل- اختلاف لرې کول- (۴)رغل- بخښل- دَ دښمن جزا بخښل-

روغولے:(رو-غه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روغولی- مؤنث روغولې- وګورئ روغول-

روغون:(رو-غه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ روغول-

روغونکے:(رو-غه-وون-کے)اسم فاعل- جمع روغونکی- مؤنث روغونکې- وګورئ روغول-

روغونګ:(رو-غه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ روغول-

روغونه:(رو-غه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ روغول-

روغوهٔ:(رو-غه-وهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ روغول-

روغه:(رو-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جوړه- صلح- پخلا کېدنه- پخلا کېدهٔ- موافقه- سوله- (۲)سمه- درسته- (۳)دَ روغ مؤنث- جمع روغې-

روغه جوړه:(رو-غه-جو-ړه)اسم مرکب- جوړه جاړه- صلح- روغه-

روغه ليک:(رو-غه-ليک)اسم صفت- صلح نامه- راضی نامه- عهدنامه- اقرارنامه؛ دَ روغې يا جوړې لوظنامه- (افغانستان)-

روغه وال:(رو-غه-وال)اسم- (۱)مېنځګړے- مېنځګړے- درېمګړے- درېم- ثالث- هغه څوک چې دَ دوؤ دُښمندارو تر مېنځه روغه راولی- (۲)هغه څوک چې دښمن وُنهٔ لری-

روغېدل:(رو-غې-دَل)مصدر- جوړېدل- شفا موندل- سازېدل- صحت موندل-

ښهٔ کېدل- رغېدل- (۲)ترمیمېدل- سمېدل- (۳)بخښلے کېدل- عفوه کېدل- بخښل کېدل- (۴)پخلا کېدل-

روغېدلے:(رو-غې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روغېدلی- مؤنث روغېدلې- وګورئ روغېدل-

روغېدن:(رو-غې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ روغېدل-

روغېدنګ:(رو-غې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ روغېدل-

روغېدنه:(رو-غې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ روغېدل-

روغېدونکے:(رو-غې-دون-کے)اسم فاعل- جمع روغېدونکی- مؤنث روغېدونکې- وګورئ روغېدل-

روغېدهٔ:(رو-غې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ روغېدل-

رؤف:(ر-ووف)اسم صفت- (۱)مهربان- مشفق- (۲)دَ الله تعالٰی یو صفتی نوم- (م- عربی)-

روک:(روک)اسم- واحد- مذکر- پتلون- (افغانستان)-

روک:(روک)اسم- نقد- نقدی- روپی- ګاڼه- چاندی- خزانه-

روک:(روک)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)پاک زړے- صادق- ساده- (۲)څرګند- جوت- ښکاره-

روک پوک:(روک-پوک)اسم- وګورئ رک پک-

روک پهٔ روکه:(روک-پهٔ-رو-کهٔ)لاس پهٔ لاس- نقد پهٔ نقد-

روکړ:(رو-کړ)اسم صفت- هغه کتاب چې پکښې دَ نغدو روپیو حساب کتاب ساتلے شی-

روکو:(رو-کو)اسم- دَ مشر وروړ لقب- (افغانستان)-

روکه:(رو-که)اسم- واحد- مؤنث- روپی-

روګ:(روګ)اسم- (۱)دَ څپلی تسمه- (۲)دَ کمربند تسمه- پټی- (۳)دَ سنیو پرتوګ- (افغانستان)-

روګ بوګ:(روګ-بوګ)اسم صفت- روګې بوګې- څېرې ویرې- ځیرې پیرې- بژه بژه- تراړی تراړی-

روګردان:(رو-ګر-دان)اسم- مخ اړونکے- نافرمانی کونکے- مؤنث روګردانه- (م- فارسی)-

روګردانی:(رو-ګر-دا-نی)اسم- مخ اړونه- مخالفت کونه- نافرمانی کونه-

روګرول:(رو-ګهٔ-ر-ول)مصدر- اموخته کول- عادت کول-

روګرولے:(رو-ګهٔ-ر-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع روګرولی- مؤنث روګرولې- وګورئ روګرول-

روګرون:(رو-ګهٔ-ر-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ روګرول-

روګرونکے:(رو-ګهٔ-ر-وون-کے)اسم فاعل- جمع روګرونکی- مؤنث روګرونکې- وګورئ روګرول-

روګرونګ:(رو-ګهٔ-ر-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ روګرول-

روګرونه:(رو-ګهٔ-ر-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ روګرول-

روګودر:(رو-ګو-در)اسم- لاره- بندوبست-

روګوے:(رو-ګهٔ-وے)اسم- جوتی- ښکوے- ولان- دَ کار سره بلد شوے حېوان-

روګه:(روهٔ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- ورګه- وروړه- ورګی- یوه وړه حشره-

روګه:(رو-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګټه- ګټه وټه- برغه- نفع- حاصل- امدن- (۲)وصف- خوبی- نتیجه- جمع روګی-

روګے:(رو-ګے)اسم تصغیر- دَ "روګ" مصغر- وړه او نری لاره-

رول:(رول)اسم- (۱)نقش- سهم- برخه- پاټ- عمل- چار- وظیفه- دنده- (۲)هغه کار یا عمل چې دَ سینما یا تیاتر لوبغاړے یې دَ مُنری "موضوع" پهٔ اساس ترسره کوی- (۳)قاعده- اصول- مقررات- (۴)کړه- کړی- حلقه- الغه- (۵)ستیرنګ- دَ موټرو لاریو یو اړخ نه بل اړخ ته دَ ګرځولو تنظیمونکې آله- (۲)وګورئ رولر- (افغانستان)-

رول:(رهٔ-ول)مصدر- رودل- رابنکل- راکښل- چوپل- تے رودل-

رولر:(رو-لر)اسم- رول- دَ اُسپنې درنه آله چې موټر یا لاری پسې وروستو یا مخکښې تړلې وی اؤ پاسته او اومهٔ خایونه پرې کلکوی- (م- انګریزی)-

رولے:(رهٔ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رولی- مؤنث رولې- وګورئ رول-

روم:(رهٔ-وم)فعل- چوپم- دَ رودلو او رولو څخه دَ مفرد متکلم جوړه شوې صیغه-

رومال:(رو-مال)اسم- واحد- مذکر- دسمال- رومیال- ریمال- جمع رومالونه-

رومان:(رو-مان)اسم- واحد- مذکر- (۱)رومانس- حکایت- داستان- افسانه- ناول- (۲)دَ حماسی ادب یو قسم چې دَ انسانی ژوند پېچلې پروسه دَ حکایت او داستان پهٔ ړول منعکسه شی-

رومانی:(رو-ما-نی)اسم- دَ رومان سره متعلق- وګورئ رومان-

رومبژوی:(روم-به-ژوی)اسم- شیرواری- لرکینه- ببخی وړه کاسه- (افغانستان)-

رومی:(رو-می)اسم- باټینګر- سرهٔ بانجان- رومی بانجان-

رومیال:(روم-یال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ رومال-

رومی:(رو-می)اسم- ښځه- بلا- عفویت- هغه ښځه چې دَ شپې ګرځی خلق ویروی او یا یې بیماروی-

رون:(رون)اسم- (۱)رون- وار- نوبت- خل- چل- (۲)ورون- پتون- لینګے- زنګون- اړخ- (افغانستان)-

رون:(رهٔ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ رول-

روند:(ر-وند)اسم صفت- (۱)جاری- بهاند- (۲)روان- تلونکے- رهی- رونده-

رونده:(ر-ون-ده)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ روند-

روندے:(ر-ون-دے)اسم صفت- (۱)لهٔ نسه- اسهال شوے- اسهال- جاری- هغه ماشوم چې دستونه کوی- (۲)روند- تلونکے- دَ تګ پهٔ حال کښې-

رونړ:(رونړ)اسم- واحد- مذکر- ورون- زنګون- پتون- لینګے- اړخ-

رونق:(رو-نق)اسم صفت- (۱)ښهٔ والے- سموالے- (۲)خوند- مزه- (۳)ښکلا- ښائیست- (۴)شان- پرتم- (۵)پرمختیا- پهٔ کار کښې پرمختګ- (۶)خلا-

خل- خلېدنه- رڼا- روښنائي-

روڼکے:(رڼ-روڼ-کے)اسم فاعل- جمع روڼکي- مؤنث روڼکې- وګورئ روڼول-

روڼنګ:(رڼ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ روڼول-

رونګ:(رونګ)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې د سسپار د کندې په مېنځ کښې وی-.

رونګه:(رونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لوېړنده- تندرکے- اجلځے- (۲)ستر- بړونکے- د غوړ او تندې تر مېنځه خاۍ-

روني:(رو-نۍ)اسم- واحد- مؤنث- تے رودونکې جینۍ- تی خوره جلکۍ- هغه جینۍ چې تے روی- (افغانستان)-

روڼ:(روڼ)اسم صفت- (۱)خلانده- خلند- روښان- (۲)ښکاره- څرګند-

روڼ:(روڼ)اسم- (۱)وار- نوبت- چل- پلا- خل- (۲)نظم- تربیت- (۲)د توپې یو قسم کولی-

روڼائي:(رو-ڼا-ئي)اسم- (۱)رڼائي- (۲)خوائي-

روڼکه:(روڼ-که)اسم- واحد- مؤنث- رونګه- تندرکے- تنکے- څنه- د غوړ او تندې تر مېنځه برخه- جمع روڼکې-

روڼکۍ:(روڼ-کۍ)اسم- واحد- مؤنث- ریچه- د سپږې اګۍ- د سپږې تخم-

روڼل:(رو-ڼل)مصدر- رڼا کول- روښانه کول-

روڼلے:(رو-ڼه-لے)اسم مفعول- جمع روڼلی- مؤنث روڼلې- وګورئ روڼل-

روڼوالے:(روڼ-وا-لے)اسم- روښنائي- رڼائي-

روڼول:(رو-ڼه-ول)مصدر- (۱)روښانه کول- رڼا کول- (۲)رڼا ته ښکاره کول- رڼا ته ایستل- (۳)پاکول- صافول- (۴)شپه په ویښه تېرول- شپه وځل- شوګیر کول- (۵)دعویٰ فېصله کول- دعویٰ خلاصول- (۶)په وار کول- په نوبت کول- (۷)ترتیبول- مرتبول- منظمول- په ترتیب سره ایښودل-

روڼولے:(رو-ڼه-وه-لے)اسم مفعول- جمع روڼولی- مؤنث روڼولې- وګورئ روڼول-

روڼون:(رو-ڼه-ون)حاصل مصدر- وګورئ روڼول-

روڼونکے:(رو-ڼ-وون-کے)اسم فاعل- جمع روڼونکي- مؤنث روڼونکې- وګورئ روڼول-

روڼونګ:(رو-ڼه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ روڼول-

روڼونه:(رو-ڼه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ روڼول-

روڼونے:(رو-ڼه-وو-نے)اسم فاعل- جمع روڼوني- مؤنث روڼونې- وګورئ روڼول-

روڼوه:(رو-ڼه-وه)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ روڼول-

روڼېدل:(رو-ڼې-دل)مصدر- (۱)رڼا کېدل- روښانه کېدل- (۲)صفا کېدل- پاکېدل- (۳)په وار کېدل-

روڼېدلے:(رو-ڼې-ده-لے)اسم مفعول- جمع روڼېدلی- مؤنث روڼېدلې- وګورئ روڼېدل-

روڼېدن:(رو-ڼې-دن)حاصل مصدر- وګورئ روڼېدل-

روڼېدنګ:(رو-ڼې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ روڼېدل-

روڼېدونکے:(رو-ڼې-دون-کے)اسم فاعل- جمع روڼېدونکی- مؤنث روڼېدونکې- وګورئ روڼېدل-

روڼېده:(رو-ڼې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ روڼېدل-

روڼه:(رو-ڼه)اسم صفت- (۱)روښانه- د روڼ مؤنث- (۲)رڼې- ړوے- یو قسم بوټے چې ببخ ې دواګانو کښې هم استعمالیږی- (افغانستان)-

روڼه سترګه:(رو-ڼه-ستر-ګه)اسم- رڼه سترګه- د سبا سترګه- د سحر سترګه- د سحر ستورے-

روڼې:(رو-ڼې)اسم- تے رودونکې وړه جینۍ- هغه جینۍ چې تازه ې سترګې رڼې کړې وی- (افغانستان)-

روڼے:(رو-ڼے)اسم صفت- صېقل-

روڼے:(رو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- اوڼے- رڼے- زروڼے- وروڼے- اورڼے- جمع رڼې-

رووَل:(رو-ول)مصدر- رودل- روَل- چوشل- د تی نه پی رووَل- د تی نه په خله باندې پئ راکښل- (افغانستان)-

رووَل:(رو-ول)مصدر- جاری کول- عادی حالت ته اړول- چالانه کول- حرکت ورکول-

روونکے:(رو-وون-کے)اسم فاعل- جمع روونکي- مؤنث روونکې- وګورئ رووَل-

روونه:(رو-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ رووَل-

روونے:(رو-وو-نے)اسم فاعل- جمع رووني- مؤنث رووني- وګورئ رووَل-

رووے:(رو-وے)اسم- واحد- مذکر- پئ رودونکے ماشوم- جمع رووی-

رووے:(رو-وے)اسم- واحد- مذکر- سفره- دسترخوان- کبے- د ډوډی شخولے-

روهو:(رو-هو)اسم- واحد- مذکر- راهو- یو قسم هندی کب-

روهېدل:(رو-هې-دل)مصدر- روښېدل- (۱)د ګډو بزو د خپلو بچو سره د یو ځاۍ کېدو په وخت میں میں کول- (۲)ایری وهل- د خلې جنګ کول-

روی:(ر-وی)حرف- د قافیې اخری بار بار راتلونکے حرف-

رویا:(رو-یا)اسم- خوب- خوب لیدنه-

رویاوی:(رو-یا-وی)اسم- د رویا سره متعلق- وګورئ رویا-

روئبار:(روئ-بار)اسم- واحد- مذکر- قاصد- پیغام رسونکے-

روئباری:(روئ-با-ري)اسم- پیغام رسانی-

روئ بند:(روئ-بند)اسم- روبند- د بورقعې مخکینی حصه- اوڼے- لچک- سپوږے- نقاب- مخ پټونے-

رویت:(رو-یت)اسم- دیدار- دیدن- کتنه- (م- عربی)-

رویتوب:(رو-وی-توب)اسم- حرص- چالاکی- روے والے-

روئیداد:(روئ-داد)اسم- واحد- مذکر- پېښه- واقعه- حادثه- شخړه- د حال

رینخنه:(رین-خهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رینخل-

رینخه:(رین-خه)اسم- واحد- مؤنث- ریخ- دست- جمع رینخې-

رینده:(رین-ده)اسم- واحد- مؤنث- رینه- دٔ چمیارانو یوه آله چې څپلۍ پرې

کښلے شی- جمع رېندې-

رېندې:(رین-دې)اسم صفت- پوخناٰ- دٔ عمر او وخت نه زیات پوخ-

رینګ:(رینګ)اسم صوت- (۱)دٔ ژړا اواز- ژړېدنه- (۲)هغه کړی چې دٔ څپلۍ

پوندې پرې تړلے کیږی- (اسم)-

رینګارے:(رینګ-ګا-رے)اسم صوت- دٔ ژړا نرے نرے اواز-

رینګټ:(رینګ-ګټ)اسم صوت- رینګه رینګه کونه-

رینګړے:(رینګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دٔ بارتنګ وُنه- نباتاتی نوم سیډ آف

فلیورټ (SEED OF FLEAWART)- جمع رینګړی-

رینګن:(رینګ-ګن)اسم صفت- رینګه رینګه کونکے-

رینګول:(رینګ-ګ-ول)مصدر- ماشوم دٔ تنګولو پهٔ وجه پهٔ رینګه رینګه سَر

کول- دٔ ماشوم بې وجې مسلسل په خاص انداز کښې تنګول او ژړول-

رینګون:(رینګ-ګ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ رینګول-

رینګونکے:(رینګ-ګ-ون-کے)اسم فاعل- جمع رینګونکی- مؤنث رینګونکې-

وګورئ رینګول-

رینګونګ:(رینګ-ګ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رینګول-

رینګونه:(رینګ-ګ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رینګول-

رینګه:(رینګ-ګه)اسم- (۱)قطار- (۲)پهٔ نری اواز ژړا-

رینګه رینګه:(رینګ-ګه-رینګ-ګه)اسمِ صوت- رینګېدنه- دٔ ماشوم دٔ ژړا اواز-

رینګېدل:(رینګ-ګې-دل)مصدر- رژن رژن کول- دٔ ماشوم پهٔ نری اواز مسلسل

ژړېدل-

رینګېدلے:(رینګ-ګې-دهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ رینګېدل-

رینګېدن:(رینګ-ګې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ رینګېدل-

رینګېدنګ:(رینګ-ګې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رینګېدل-

رینګېدنه:(رینګ-ګې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رینګېدل-

رینګېدونکے:(رینګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- جمع رینګېدونکی- مؤنث

رینګېدونکې- وګورئ رینګېدل-

رینګېدهٔ:(رینګ-ګې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب

صیغه- وګورئ رینګېدل-

رینګے:(رینګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- (۱)اواز- (۲)دٔ سندرې وزن یا سُر-

سلسله- تسلسُل-

رینه:(ری-نه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ چمیاری دٔ کار یو خاص اوزار چې سوری

پرې کولے شی- په خنو خایونو کښې پرې شکورونه هم جوړولے شی، او

زوی پرې سپینولے شی-

رینیه رینیه:(رین-یه-رین-یه)اسم صوت- رونګه رونګه- رینګه رینګه-

رینے:(ری-نے)اسم- سوربخن رنګ لرونکے حیوان-

ریو:(ریو)اسم- فرېب- چال- دوکه-

ریوک:(ری-وک)اسم- ذهین- چالاک- مؤنث ریوکه- جمع مؤنث ریوکې-

ریوکے:(ری-وه-کے)اسم تصغیر- دٔ ریوک مصغر- وګورئ ریوک-

ریومے:(ریو-مے)اسم- دٔ نامهٔ لاندې وېشتهٔ-

رئیس:(رَ-ئیس)اسم صفت- (۱)سردار- مالدار- (۲)صدر- (افغانستان)-

(م- عربی)-

رې:(رې)حرف- دٔ پښتو دٔ حروف تهجی شپاړسم حرف اواز او تلفظ چې د

ابجدو پهٔ حساب دوه سوه شمارلے شی-

رېبار:(رې-بار)اسم- واحد- مذکر- قاصد- پېغام رسونکے- جمع رېباران-

رېباری:(رې-با-ری)اسم- دٔ عاشق او معشوق تر مېنځه پېغام رسونه-

رېبخ:(رې-بخ)اسم- واحد- مذکر- رېبخونے- جاړو- جارو- جاروب-

رېبخ بوټے:(رې-بخ-بو-ټے)اسم- جارو بوټے- باری- پنے- دٔ جارو جوړولو

دٔ پاره پکارونکے بوټے- جمع رېبخ بوټی-

رېبخل:(رېب-خل)مصدر- جاروکړا- جارو وهل- صفا کول-

رېبخلے:(رېب-خهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رېبخلی- مؤنث رېبخلې- وګورئ

رېبخل-

رېبخن:(رېب-خن)حاصلِ مصدر- وګورئ رېبخل-

رېبخنګ:(رېب-خنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رېبخل-

رېبخنه:(رېب-خهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رېبخل-

رېبخونکے:(رېب-خون-کے)اسم فاعل- جمع رېبخونکی- مؤنث رېبخونکې-

وګورئ رېبخل-

رېبخے:(رېب-خے)اسم صفت- خاکروب- جاروکښ- جمع رېبخی-

رېبدل:(رېب-دل)مصدر - دٔ فصل وغېره پرېکول- رېبل-

رېبدلے:(رېب-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رېبدلی- مؤنث رېبدلې- وګورئ

رېبدل-

رېبدن:(رېب-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ رېبدل-

رېبدنګ:(رېب-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رېبدل-

رېبدنه:(رېب-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رېبدل-

رېبدون:(رېب-دون)اسم- دٔ یوې وُنې نامه-

رېبدونکے:(رېب-دون-کے)اسم فاعل- جمع رېبدونکی- مؤنث رېبدونکې-

وګورئ رېبدل-

رېبړ:(رې-بړ)اسم- نرمه خټه-

رېبل:(رې-بل)مصدر- رېبدل- فصل پرېکول-

رېبلے:(رې-بهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رېبلی- مؤنث رېبلې- وګورئ رېبل-

رېبند:(رې-بند)اسم- (۱)ټیټ شوے- کوږ- ټیټ- (۲)سم- نېغ- ربند-

رېبندتوب:(رې-بند-توب)اسم- (۱)ټیټ والے- کوږ والے- (۲)اواروالے- هوار

والے- سموالے-

رېبندول:(رې-بن-دَ-ول)مصدر- (۱)راټیټول- کږول- خم ورکول- (۲)هوارول-

رېبندون:(رې-بن-ده-ون)حاصل مصدر - وګورئ رېبندول-

رېبندونکے:(رې-بن-ده-وون-کے)اسم فاعل- جمع رېبندونکی- مؤنث رېبندونکې- وګورئ رېبندول-

رېبندونګ:(رې-بن-دَ-ونګ)حاصل مصدر - وګورئ رېبندول-

رېبندونه:(رې-بن-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ رېبندول-

رېبونکے:(رې-بون-کے)اسم فاعل- جمع رېبونکی- مؤنث رېبونکې- وګورئ رېبل-

رېبنه:(رې-بهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ رېبل-

رېپړے:(رېپ-ړے)اسم- (۱)لېپړی- ختې- چکړې-

رېت:(رېت)اسم- رعايا- مالګزار- باج ګزار- نوکر- دَ حکم لاندې-

رېت پېت:(رېت-پېت)اسم- پامال- لتاړ- لېت پېت-

رېټ:(رېټ)اسم- نرخ- قيمت- بيعه- بيه- (م- انګريزي)-

رېټه:(رې-ټه)اسم- واحد- مؤنث- روټه- دَ اربشو روټی- جمع رېټې-

رېټه:(رې-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)رېټی- دَ ارهنډې اړوکے- (۲)يو قسم وُنه چې غُنډې غُنډې دانې کوی او دانې ئې دَ جامو او سر وينځلو دَ پاره دَ صابون پهٔ طور استعمالولے شی- جمع رېټې-

رېټی:(رې-ټی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ رېټه-

رېجه:(رې-جه)اسم- واحد- مؤنث- جندره- دَ زرګرانو يوه آله- جمع رېجې-

رېچ:(رېچ)اسم- باجری- وړوکی کانی-

رېحان:(رې-حان)اسم- کشمالو- کشمالے- يو خوشبوداربوټے- بوبرے- ببرے- نباتاتی نوم اوسی مم بے سی لی کم (OCIMUM BASILICUM)-

رېدک:(رې-دک)اسم صفت- شائسته هلک-

رېدوان:(رېد-وان)اسم- يو قسم ونه-

رېدی:(رې-دی)اسم- دَ لاله ګل- غانټول- خاټول- غاټول- غاټوړے- لاله-

رېډيو:(رې-ډی-يو)اسم- يو سائنسي آله چې نشرياتی خوروني پرې کيږی-

رې رې:(رې-رې)اسم صوت- دَ اوښ دَ رابللو خاصې نارې-

رېږ:(رېږ)اسم- نالی- دَ درياب وړوکے شاخ-

رېږم:(رې-ږم)اسم- واحد- مذکر- دَ مرجان يو قسم قيمتی کانړے- جمع رېږمونه-

رېږو:(رې-ږو)اسم- دَ لاس ګاڼے-

رېږه:(رې-ږه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غوايانو ګاڼے-

رېږی:(رې-ږی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ بکيانې او شنډی تخم يا زړی-

رېږے:(رې-ږے)اسم- واحد- مذکر- هغه ګډ چې پهٔ تندی سپين خاپ لری-

رېز:(رېز)اسم- دَ مرغيو لهٔ وُنې نه پهٔ زمکه راکوزېدنه-

رېز:(رېز)اسم- (۱)ايمال- رېخ- برف کوچ- دَ واورو راښوېدنه-

رېزش:(رې-زش)اسم- نزله- دَ يخنی وهنه- دَ پوزې بهېدنه- (م- فارسی)-

رېزګاری:(رېز-ګا-ری)اسم- ماتې پيسې- چينج-

رېزګی:(رېز-ګی)اسم- چوره- وړې وړې ذرې-

رېز مرېز:(رېز-م-رېز)اسم صفت- ذرې ذرې-

رېزه:(رې-زه)اسم- واحد- مؤنث- ذره- پوټسکے- پوټے- معمولی- وړوکے- وړکوټے- پېر لږ-

رېزېدل:(رې-زې-دل)مصدر - دَ څوکو نه اوړېدل- لهٔ ژيو اوړېدل-

رېزېدلے:(رې-زې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع رېزېدلی- مؤنث رېزېدلې- وګورئ رېزېدل-

رېزېدن:(رې-زې-دن)حاصل مصدر - وګورئ رېزېدل-

رېزېدنګ:(رې-زې-دنګ)حاصل مصدر - وګورئ رېزېدل-

رېزېدنه:(رې-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ رېزېدل-

رېزېدونکے:(رې-زې-دون-کے)اسم فاعل- جمع رېزېدونکی- مؤنث رېزېدونکې- وګورئ رېزېدل-

رېژن:(رې-ژن)حاصل مصدر - (۱)رېژون- رژون- مېده کونه- (۲)تويونه- خپونه-

رېژول:(رې-ژه-ول)مصدر - رژول- دانه دانه کول- دَ وړی نه دانې لرې کول- ګل پاڼې پاڼې کول-

رېژون:(رې-ژه-ون)حاصل مصدر - وګورئ رېژول-

رېژون:(رې-ژه-ون)اسم- وګورئ رېژول-

رېژونکے:(رې-ژه-وون-کے)اسم فاعل- جمع رېژونکی- مؤنث رېژونکې- وګورئ رېژول-

رېژونګ:(رې-ژه-ونګ)حاصل مصدر - وګورئ رېژول-

رېژونه:(رې-ژه-وهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ رېژول-

رېژه:(رې-ژه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پسولونو (کالو) دَ جوړولو يو قسم قالب چې ويلی شوی سرهٔ پکښې اچولے شی- جمع رېژې-

رېژېدل:(رې-ژې-دل)مصدر لازم- رژېدل- دانه دانه کېدل- دَ وړی نه دانې لرې کېدل- ګل پاڼې پاڼې کېدل-

رېژېدن:(رې-ژې-دن)حاصل مصدر - وګورئ رېژېدل-

رېژېدنګ:(رې-ژې-دنګ)حاصل مصدر - وګورئ رېژېدل-

رېژېدنه:(رې-ژې-دهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ رېژېدل-

رېژېدونکے:(رې-ژې-دون-کے)اسم فاعل- جمع رېژېدونکی- مؤنث رېژېدونکې- وګورئ رېژېدل-

رېژېدهٔ:(رې-ژې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رېژېدل-

رېږد:(رې-ږد)اسم- واحد- مذکر- دوپ- ګرمی- ذپ-

رېږد:(رېږد)اسم- خوځېدنه- لړزان- رېږدان-

رېږدان:(رېږ-دان)اسم- واحد- مذکر- رپ- ړچ- رېږدېدنه- رېږد-

رېږدل:(رېږ-دل)مصدر- رېږدېدل- رپېدل- (افغانستان)-

رېږدله:(رېږ-ده-له)اسم- واحد- مؤنث- زلزله- جمع رېږدلې-

رېږدول:(رېږ-دَ-ول)مصدر- خوځول- پهٔ حرکت کښې راوستل-

رېږدولے:(رېږ-دَ-وڼ-لے)اسمِ مفعول- جمع رېږدولی- مؤنث رېږدولې- وګورئ رېږدول-

رېږدون:(رېږ-دَ-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ رېږدول-

رېږدونکے:(رېږ-دَ-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع رېږدونکی- مؤنث رېږدونکې- وګورئ رېږدول-

رېږدونګ:(رېږ-دَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رېږدول-

رېږدونه:(رېږ-دَ-وڼ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رېږدول-

رېږدېدل:(رېږ-دې-دَل)مصدرِ لازم- خوځېدل- دَ وېرې یا تبې پهٔ وجه وجود پهٔ حرکت کښې راتلل-

رېږدېدلے:(رېږ-دې-دڼ-لے)اسمِ مفعول- جمع رېږدېدلی- مؤنث رېږدېدلې- وګورئ رېږدېدل-

رېږدېدن:(رېږ-دې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ رېږدېدل-

رېږدېدنګ:(رېږ-دې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ رېږدېدل-

رېږدېدنه:(رېږ-دې-دڼ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ رېږدېدل-

رېږدېدونکے:(رېږ-دې-دُون-کے)اسمِ فاعل- وګورئ رېږدېدل-

رېږدېدهٔ:(رېږ-دې-دڼ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ رېږدېدل-

رېسوکېسو:(رې-سو-کې-سو)اسم- لم لېټ- ناراستی- ټال مټول- اخوا دېخوا- (کول مصدر)-

رېش:(رېش)اسم- زخم- (م- فارسی)-

رېشتل:(رېش-تل)اسم- رېشتلے- پهٔ وبخ کښې پاتې شوې خیرې-

رېشتلے:(رېش-ته-لے)اسم- وګورئ رېشتل-

رېشخند:(رېش-خند)اسم- پیشاړه- ټوقه- ملنډه- نخوال- رېشخنده- (م- فارسی)-

رېشخندی:(رېش-خن-دی)اسم- وګورئ رېشخند- دَ رېشخندوړ-

رېشل:(رې-شَل)مصدر- ورېشل- ورېشَل- ورتل-

رېشلے:(رې-شڼ-لے)اسمِ مفعول- جمع رېشلی- مؤنث رېشلې- وګورئ رېشل-

رېشم:(رې-شم)اسم- وګورئ ابرېښم-

رېشمال:(رېش-مال)اسم- بې غېرت- بېروا- دووس- چړوس- (فارسی)-

رېشمالی:(رېش-ما-لی)اسم- بې غېرتی- دَ رېشمال جوړېدو حالت- (فارسی)-

رېشن:(رې-شَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ورېشل-

رېشنګ:(رې-شَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ورېشل-

رېشنه:(رې-شڼ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ورېشل-

رېشو:(رې-شو)اسم صفت- ببرویرے-

رېشونکے:(رې-شون-کے)اسمِ فاعل- جمع رېشونکی- مؤنث رېشونکې- وګورئ ورېشل-

رېشه:(رې-شه)اسم- بنسټ- بنیاد- ببخ- وبخ- جمع رېشې-

رېښته:(رېښ-ته)اسم- اېلې پېښې- پېښې ابل-

رېښم:(رې-ښم)اسم- وګورئ ابرېښم-

رېښمانګے:(رېښ-مانګ-ګے)اسمِ صفت- دَ ورېښمو سره متعلق- ورېښمین- رېښمین-

رېښم چینجے:(رې-ښم-چین-جے)اسم- واحد- مذکر- هغه چینجے چې رېښم جوړوی-

رېښمین:(رېښ-مین)اسمِ صفت- لهٔ ورېښمو جوړ شوے- رېښمانګے-

رېک:(رېک)اسم- واحد- مذکر- نغدی- نغد مال-

رېګ:(رېګ)اسم- واحد- مذکر- مېده خاوره- شګه- جمع رېګونه-

رېګاشه:(رې-ګا-شه)اسم- واحد- شګوڼ-

رېګبومه:(رېګ-بو-مه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- شګلنه زمکه- رېګی- جمع رېګبومې-

رېګ روان:(رېګ-رَ-وان)اسمِ صفت- بهېدونکې شګې- سپینې او نرۍ بهېدونکې شګې-

رېګستان:(رې-ګس-تان)اسم- دشت- صحرا- شګلنه زمکه- جمع رېګستانونه-

رېګمال:(رېګ-مال)اسم- واحد- مذکر- یو زیړ شان کاغذ چې دَ اُسپنې نه پرې زنګ لرې کولے شی-

رېګ مال:(رېګ-مال)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې وُنې نامه- پهٔ هندی کښې ورته مارسینګا وئیلے شی- نباتاتی نوم نېکټېنتس اربر ټرسټس (NYCTANTHES ARBOR TRISTIS)-

رېګ ماهی:(رېګ-ما-هی)اسم- یو قسم کب چې دَ صحرا پهٔ شګو داسې ګرځی لکه چې اُبو کښې ګرځی-

رېګی:(رې-ګی)اسم صفت- رېګبومه- شګلنه- دَ رېګ شګلنه زمکه- هغه زمکه چې زیاته شګه لری

رېل:(رېل)اسم- واحد- مذکر- اورګاډے- هغه دَ سورلیو ګاډے چې پهٔ پټړی چلولے شی-

رېلونے:(رې-لو-نے)اسم- واحد- مذکر- بې موره ورے- بې موره ګېډورے- (افغانستان)-

رېله:(رې-له)اسم- واحد- مؤنث- رودی- رودباره- هغه خلق یا زمکه چې دَ سیند نه کښته اخلی- (افغانستان)-

رېمان:(رې-مان)اسم- ملغلره- مرغلره- ګوهر- لعل جوهر-

رېمن:(رې-مَن)اسم صفت- (۱)خیرن- ګنده- (۲)مړاوے- نیم ژوندے- رامڅک- رامڅک- (۳)بدرنګه- بدشکله- مؤنث رېمنه-

رېمن:(رې-مَن)اسم صفت- کټور- فائده من- دَ کټې خاوند- هغه څوک چې کټه کوی-

رېمنتوب:(رې-مَن-توب)اسم- (۱)خیرنتوب- خیرنوالے- خرابوالے- (۲)مړاوے والے- (۳)بدرنګی- بدشکلی- رېمنتیا- رېمن والے-

رېمنتیا:(رې-مَن-تیا)اسم- وګورئ رېمنتوب-

رېمنوالے:(رې-مَن-وا-لے)اسم- وګورئ رېمنتوب-

زبر"(غَ-بڼ-ره)، "زورکے"(شُل)، "پېش"(نُو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(زَ-ړه)، "ڼ"(پو-ہې-دڼ)

رېمنول:(رې-مهٔ-نَ-وَل)مصدر - (۱)خيرنول- (۲)مړاوے کول- (۳)بدرنګه کول-

رېمنون:(رې-مهٔ-نَ-وَن)حاصلِ مصدر - وګورئ رېمنول-

رېمنونکے:(رې-مهٔ-نَ-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع رېمنونکی- مؤنث رېمنونکې- وګورئ رېمنول-

رېمنونګ:(رې-مهٔ-نَ-ونګ)حاصلِ مصبدر - وګورئ رېمنول-

رېمنونه:(رې-مهٔ-نَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ رېمنول-

رېمنېدل:(رې-مهٔ-نې-دَل)مصدر - (۱)خيرنېدل- ګنده کېدل- (۲)مړاوے کېدل- (۳)بدرنګه کېدل-

رېمنېدن:(رې-مهٔ-نې-دَن)حاصلِ مصدر - وګورئ رېمنېدل-

رېمنېدنګ:(رې-مهٔ-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ رېمنېدل-

رېمنېدنه:(رې-مهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ رېمنېدل-

رېمنېدونکے:(رې-مهٔ-نې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رېمنېدونکی- مؤنث رېمنېدونکې- وګورئ رېمنېدل-

رېمنېدهٔ:(رې-مهٔ-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رېمنېدل-

رېودل:(رېو-دل)مصدر - (۱)چوپړل- تے رودل- رول- (۲)لوړېدل- مسکېدل- (۳)وګورئ رېبل- (افغانستان)-

رېوړی:(رېو-ړی)اسم- جمع- مؤنث- لېوړی- دَ کُنځلو او کُړې يا چينو نه جوړ شوی واړهٔ راړهٔ غُنډ خوارهٔ غُنډاری- (م- هندی رېوړی)-

رېوزه:(رېو-زه)اسم- واحد- مؤنث- پښې ارته-

رېون:(رې-وَن)اسم صفت- رودونکے- هغه وړوکے بچے چې تے روی- (افغانستان)-

رېون:(رې-ون)اسم- دَ غوا لوشلو طرز ار طريقه- (افغانستان)-

رېوند:(رې-وند)اسم- ژوره- تانه- دَ وُنې چېړ-

رېوند:(رې-وند)اسم- وګورئ رېبند-

رېوند:(رې-وَند)اسم صفت- رېونده- کوږ- ريچ-

رېوندتوب:(رې-وند-توب)اسم- کوږوالے- کج والے- رېوندتيا-

رېوندتيا:(رې-وند-تيا)اسم- رېبندتوب- رېوندتوب-

رېوندول:(رې-ون-د-ول)مصدر - کږول- يو طرف ته اړول- کجول- رېندول-

رېوندون:(رې-ون-ده-وَن)حاصلِ مصدر - وګورئ رېوندول-

رېوندونکے:(رې-ون-د-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع رېوندونکی- مؤنث رېوندونکې- وګورئ رېوندول-

رېوندونګ:(رې-ون-ده-ونګ)حاصلِ مصدر - وګورئ رېوندول-

رېوندونه:(رې-ون-ده-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ رېوندول-

رېونده:(رې-ون-ده)اسم صفت- رېوند- ريچ- کوږ-

رېونده ليکه:(رې-ون-ده-لی-که)اسم- خط مُنحنی- کوږ خط- کږه کرښه- (افغانستان)-

رېوندېدل:(رې-ون-دې-دَل)مصدر - کږېدل- يو طرف ته اوړېدل-

رېوندېدن:(رې-ون-دې-دَن)حاصلِ مصدر - وګورئ رېوندېدل-

رېوندېدنګ:(رې-ون-دې-دَنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ رېوندېدل-

رېوندېدنه:(رې-ون-دې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ رېوندېدل-

رېوندېدونکے:(رې-ون-دې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رېوندېدونکی- مؤنث رېوندېدونکې- وګورئ رېوندېدل-

رېوندېدهٔ:(رې-ون-دې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ رېوندېدل-

رېښېدل:(رې-ښې-دَل)مصدر - (۱)دَ خر لغړېدل- دَ خر خرتيزې کول- اڼېدل- ريل- اڼل- (۲)پهٔ وُچت اواز خندل-

رېښېدلے:(رې-ښې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع رېښېدلی- مؤنث رېښېدلې- وګورئ رېښېدل-

رېښېدن:(رې-ښې-دَن)حاصلِ مصدر - وګورئ رېښېدل-

رېښېدنګ:(رې-ښې-دَنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ رېښېدل-

رېښېدنه:(رې-ښې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ رېښېدل-

رېښېدونکے:(رې-ښې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع رېښېدونکی- مؤنث رېښېدونکې- وګورئ رېښېدل-

رے:(رے)اسم- (۱)رايه- رائے- (۲)فکر- سوچ- چرت-

---

ړ:(ړې)حرف- دَ پښتو دَ حروف تهجی اوولسَم او دَ اردو، هندی پینځلسم حرف-

ړانجا:(ړان-جا)اسم صفت- ضعیف- کمزورے-

ړانخړۀ:(ړان-خَړۀ)اسم- وګورئ رانخړۀ-

ړاندۀ:(ړان-دۀ)اسم- دَ ړوند جمع- نابینا-

ړبن:(ړَ-بَن)اسم- هغه سړے چې دَ خُلې نه يُ دَ خبرو پۀ وخت لاړې بهیږی- مؤنث ړبنه- جمع مونث ړبنې-

ړبے:(ړَ-بے)اسم- سوټے- دَ ملنګانو دَ لاس لرګے- جمع ړبی-

ړپ:(ړَپ)اسم- (۱)ربړ- ډېره نرمه خټه- (۲)رمه- هغه نرمه ګنده ماده چې دَ بولو سره راځی- (۳)تېنګ شربت- (۴)ناړه وینه-

ړپ:(ړَپ)اسم صوت- (۱)دَ تریو څیز پۀ لېدو سره پۀ خُلۀ کښې دَ اُبو راتللو اواز- (۲)دَ اُبو دَ خوځولو اواز- شړپ-

ړپا:(ړَ-پا)اسم صوت- دَ اُبو دَ ړپولو اواز-

ړپ ړپ:(ړَپ-ړَپ)اسم صوت- شړپ شړپ- چړپ چړپ- دَ اُبو نه دَ حرکت په وجه پېدا کېدونکے اواز-

ړپ ړوپ:(ړَپ-ړوپ)اسم صوت- دَ سیلی یا لاسونو پۀ وجه دَ اُبو لۀ خوځېدو پېدا کېدونکے اواز-

ړپند:(ړَ-پند)اسم- اُبۀ لرونکے څیز- اُبړن- اُبلن-

ړپول:(ړَ-پَ-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)اُبۀ پۀ حرکت کښې راوستل- خوځول- ړقول- (۲)ژبه تاوول- (۳)په دروغو خبرو ژبه خوځول- (۴)اُبو کښې وهل-

ړپون:(ړَ-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ړپول-

ړپونکے:(ړَ-په-وون-کے)اسم فاعل- جمع ړپونکی- مؤنث ړپونکې- وګورئ ړپول-

ړپونګ:(ړَ-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړپول-

ړپونه:(ړَ-په-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړپول-

ړپېدل:(ړَ-پې-دَل)مصدرِ لازم- اُبۀ خوځېدل- ړقېدل- (۲)په اُبو کښې وهلے کېدل-

ړپېدلے:(ړَ-پې-دۀ-لے)اسم مفعول- جمع ړپېدلی- مؤنث ړپېدلې- وګورئ ړپېدل-

ړپېدن:(ړَ-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ړپېدل-

ړپېدنګ:(ړَ-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړپېدل-

ړپېدنه:(ړَ-پې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړپېدل-

ړپېدونکے:(ړَ-پې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ړپېدل-

ړپېدۀ:(ړَ-پې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ړپېدل-

ړت:(ړَت)اسم- (۱)لۀ مناسبه حده زیات او بې ہوله څیز- (۲)نارنجی رنګ لرونکے څیز-

ړت ړیرے:(ړت-ړی-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ړیرور- (۲)ړړن- ناکاره-

ړته ړیره:(ړَ-ته-ړی-ره)اسم صفت (مرکب)- بوچه ړیره- کوسه ړیره- رنګی ړیره چې تشه پۀ زنه راختلې وی-

ړچ:(ړَچ)اسم- (۱)خوځېدنه- حرکت- (۲)څنډ-

ړچا:(ړه-چا)اسم- خوځېدنه- رپا-

ړچکه:(ړچ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ اَس یا دَ اسپې وغېره دَ تګ یو قسم-

ړچند:(ړه-چَند)اسم صفت- خوځېدونکے- مؤنث ړچنده- جمع مؤنث ړچندې-

ړچول:(ړَ-چه-وَل)مصدرِ متعدی- ړچ ورکول- خوځول- حرکت ورکول- ړنجول- ښورول-

ړچولے:(ړَ-چه-وۀ-لے)اسم مفعول- جمع ړچولی- مؤنث ړچولې- وګورئ ړچول-

ړچون:(ړَ-چه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ړچول-

ړچونکے:(ړَ-چه-وون-کے)اسم فاعل- جمع ړچونکی- مؤنث ړچونکې- وګورئ ړچول-

ړچونګ:(ړَ-چه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړچول-

ړچونه:(ړَ-چه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړچول-

ړچېدل:(ړَ-چې-دَل)مصدرِ لازم- ړچ اخستل- رېږدېدل- رپېدل- دَ یخنی یا ویرې نه رېږدېدل-

ړچېدلے:(ړَ-چې-دۀ-لے)اسم مفعول- جمع ړچېدلی- مؤنث ړچېدلې- وګورئ ړچېدل-

ړچېدن:(ړَ-چې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ړچېدل-

ړچېدنګ:(ړَ-چې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړچېدل-

ړچېدنه:(ړَ-چې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړچېدل-

ړچېدونکے:(ړَ-چې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع ړچېدونکی- مؤنث ړچېدونکې- وګورئ ړچېدل-

ړچېدۀ:(ړَ-چې-دۀ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ړچېدل-

ړښبنے:(ړښ-به-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ووړښبنے- اړخے- ړخنے- (۲)دَ کټ بازو- دَ کټ چوکاټ-

ړزول:(ړه-زه-وَل)مصدر- دَ تېلو پۀ ذریعه دَ ښاروو علاج کول- (افغانستان)-

ړزولے:(ړه-زه-وۀ-لے)اسم مفعول- جمع ړزولی- مؤنث ړزولې- وګورئ ړزول-

ړزونکے:(ړه-زه-وون-کے)اسم فاعل- جمع ړزونکی- مؤنث ړزونکې- وګورئ ړزول-

ړزونه:(ړه-زه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- ړزول-

ړزېدل:(ړه-زې-دَل)مصدرِ لازم- دَ تېلو پۀ ذریعه دَ ښاروو علاج کېدل-

ړزېدلے:(ړه-زې-دۀ-لے)اسم مفعول- جمع ړزېدلی- مؤنث ړزېدلې- وګورئ ړزېدل-

ړزېدنه:(ړه-زې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړزېدل-

ړزېدونکے:(ړه-زې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع ړزېدونکی- مؤنث ړزېدونکې- وګورئ ړزېدل-

ړزېده:(ړه-زې-ده)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ړزېدل-

ړق:(ړق)اسم- ړقا- حرکت- خوځېدنه- لړځېدنه- رپ-

ړقا:(ړ-قا)اسم- وګورئ ړق-

ړقول:(ړه-قه-ول)مصدرِ متعدی- حرکت ورکول- ړچول- چرقول- خوځول- شورول- رپول-

ړقولے:(ړه-قه-وه-لے)اسمِ مفعول- جمع ړقولی- مؤنث ړقولې- وګورئ ړقول-

ړقون:(ړه-قه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ړقول-

ړقونکے:(ړه-قه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع ړقونکی- مؤنث ړقونکې- وګورئ ړقول-

ړقونګ:(ړه-قه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړقول-

ړقونه:(ړه-قه-وه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړقول-

ړقېدل:(ړه-قې-دل)مصدرِ لازم- حرکت کښې راتلل- خوځېدل- لړځېدل- ړکېدل- رپېدل-

ړقېدلے:(ړه-قې-ده-لے)اسمِ مفعول- جمع ړقېدلی- مؤنث ړقېدلې- وګورئ ړقېدل-

ړقېدن:(ړه-قې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ړقېدل-

ړقېدنګ:(ړه-قې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړقېدل-

ړقېدنه:(ړه-قې-ده-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړقېدل-

ړقېدونکے:(ړه-قې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع ړقېدونکی- مؤنث ړقېدونکې- وګورئ ړقېدل-

ړقېده:(ړه-قې-ده)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ړقېدل-

ړک:(ړک)اسم- وګورئ ړچ-

ړکول:(ړه-که-ول)مصدرِ متعدی- دَ "ړقول" بل قرأت- وګورئ ړقول-

ړکېدل:(ړ-کې-دل)مصدر- دَ "ړقېدل" بل قرأت- وګورئ ړقېدل-

ړنبوسه:(ړن-بو-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لېټی- اتوب- (۲)اوماچ- جمع ړنبوسې-

ړندتوب:(ړند-توب)اسم- نابینائ- ړوندوالے- ړوندتوب- ړندښت-

ړندښت:(ړن-دښت)اسم- وګورئ ړندتوب-

ړندکی:(ړن-د-کی)اسم- واحد- مؤنث- چرمښکې- پانتوپېسه- پاتوپېسه-

ړندکے:(ړن-د-کے)اسمِ تصغیر- وګورئ ړندوکے-

ړندوکے:(ړن-دو-کے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- ړوند- نابینا- دَ ړوند تصغیر-

ړندول:(ړن-ده-ول)مصدرِ متعدی- (۱)نابینا کول- (۲)پسخول-

ړندون:(ړن-ده-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ړندول-

ړندونکے:(ړن-د-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع ړندونکی- مؤنث ړندونکې- وګورئ ړندول-

ړندونګ:(ړن-ده-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړندول-

ړندونه:(ړن-ده-وه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړندول-

ړنده:(ړن-ده)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ ړوند مؤنث- وګورئ ړوند-

ړنده چرګه:(ړن-ده-چر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پښتنو یو خاص قسم پخکړے-

ړنده خره:(ړن-ده-خره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ملکانو یو قسم لوبه-

ړنده کاته:(ړن-ده-کا-ته)اسم (مرکب)- بې پرسه- اندېر- اندېر ګنهېر- ناپرسانه- بې انصافی- بې عدالتی- جمع ړندې کاتې-

ړنده مره:(ړن-ده-مه-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم مره-

ړنده مېږی:(ړن-ده-مې-ږی)اسم- یو قسم چرمښکې- جمع ړندې مېږی-

ړندېدل:(ړن-دې-دل)مصدرِ لازم- (۱)نابینا کېدل- دَ نظر بیخی ختمېدل- (۲)پسخېدل- (۳)بغض او دُشمنی ساتل-

ړندېدن:(ړن-دې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ړندېدل-

ړندېدنګ:(ړن-دې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړندېدل-

ړندېدنه:(ړن-دې-ده-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړندېدل-

ړندېدونکے:(ړن-دې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع ړندېدونکی- مؤنث ړندېدونکې- وګورئ ړندېدل-

ړندېده:(ړن-دې-ده)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ړندېدل-

ړنګ:(ړنګ)اسم صفت- وران- رازران- تباه- خراب ترا‌ب- نړېدلے- وران شوے- لهٔ مېنځه تللے- مؤنث ړنګه- جمع مؤنث ړنګې-

ړنګا:(ړنګ-ګا)اسم- وران- ویجاړ- خراب-

ړنګ بنګ:(ړنګ-بنګ)اسم صفت- (۱)مست- بې هوش- نشه- (۲)شاولې واولې تلنه- دَ ناز تګ- (۳)خوت پت-

ړنګتوب:(ړنګ-توب)اسم- وګورئ ړنګتیا-

ړنګتیا:(ړنګ-تیا)اسم- ړنګوالے- ړنګتوب- ورانېدنه- بربادی- تباهی-

ړنګړی:(ړنګ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- دَ چیلم نچه- دَ چیلم نَل- (افغانستان)-

ړنګوالے:(ړنګ-وا-لے)اسم- وګورئ ړنګتیا-

ړنګول:(ړنګ-ګه-ول)مصدرِ متعدی- ورانول- بربادول- تباه کول-

ړنګون:(ړنګ-ګه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ړنګول-

ړنګونکے:(ړنګ-ګه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع ړنګونکی- مؤنث ړنګونکې- وګورئ ړنګول-

ړنګونګ:(ړنګ-ګه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ړنګول-

ړنګونه:(ړنګ-ګه-وه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ړنګول-

ړنګېدل:(ړنګ-ګې-دل)مصدرِ لازم- ورانېدل- بربادېدل- تباه کېدل- پرېوتل-

ړنګېدن:(ړنګ-ګې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ړنګېدل-

ړنګېدنګ:(ړنګ-ګې-دنګ)حاصلِ مصدر - وګورئ ړنګېدل-
ړنګېدنه:(ړنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر - وګورئ ړنګېدل-
ړنګېدونکے:(ړنګ-ګې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع ړنګېدونکی- مؤنث ړنګېدونکې- وګورئ ړنګېدل-
ړنګېدهٔ:(ړنګ-ګې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ړنګېدل-
ړنګی:(ړنګ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- ړینګی- لونګی- دَ ربښمو ړینګی-
ړنګی:(ړنګ-ګی)اسم صفت- رغے- چې ژور نهٔ وی- چې ګڼ نهٔ وی-
ړنګے:(ړنګ-ګے)اسم- ژړا- انګولا- سونګ سونګ- رینګ رینګ- پهٔ برېج برېج ژړا- رینګټ- رینګار-
ړنګے:(ړنګ-ګے)اسم صفت- (۱)نرم- پوست- (۲)ړینګے- رنګے- رنګړے- دَ ګڼ مقابل- (۳)اُبلن- اُبړن- نرے- اوګین- (افغانستان)-
ړوز:(ړوز)اسم- پهٔ شوملو کښې پخه شوې دَ وریژو، غنمو، جوارو یا باجرې اتوب یا لېټی-
ړومبزیزه:(ړوم-به-زی-زه)اسم صفت- واحد- مؤنث- هغه غوا، مېښه وغیره چې پهٔ وړومبی خل لنګه شوې وی- بولی بوتر-
ړوند:(ړوند)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نابینا- پهٔ سترګو معذوره- (۲)کم عقل- جاهل- حاسد- جمع ړاندهٔ- مؤنث ړنده- جمع مؤنث ړندې-
ړوندتوب:(ړوند-توب)اسم- ړوندوالے- ړوندتیا- ړندېدنه-
ړوندتیا:(ړوند-تیا)اسم- وګورئ ړوندتوب-
ړوندکوڼ:(ړوند-کوڼ)اسم صفت- کور و کَر- وارخطا- چې نهٔ څهٔ اوری او نهٔ څهٔ وینی-
ړوندوالے:(ړوند-وا-لے)اسم- وګورئ ړوندتوب-
ړی:(ړی)اسم صوت- دَ مېښو او سنډاګانو دَ روانولو او پاڅولو دَ پاره ویونکے تورے-
ړیچه:(ړی-چه)اسم- واحد- مؤنث- منړه- زغل- دولکی-
ړیز:(ړیز)اسم صفت- خټه شوے- ټینګ- کړوبے- ټینګ شربت- ټینګه خټه-
ړیمباخه:(ړیم-با-خه)اسم صفت- زړه ټکړه- زړه ټوټه-
ړینګړ:(ړینګ-ګړ)اسم صفت- رنګے رنګے- دَ ګڼ ضد- رنګړے- رنګړ-
ړینګے:(ړینګ-ګے)اسم- (۱)کبے- کندرے- خدران- روے- بروټے- دسترخوان- (۲)اسبابِ خانه- دَ سامان اېښودلو ځائې- تال څکال- جمع ړینګی-
ړې:(ړې)تلفظ- وګورئ "ړ"- دَ پښتو دَ حروفِ تهجی دَ اوولسم حرف "ړ" تلفظ-

---

زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "زېر"(کِ-تاب)، "پېش"(نُو-کا-ره)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(زَ-ړه)، "هٔ"(ړو-بې-دهٔ)

ز :(زي)حرف- دَ پښتو د حروف تهجي اتلسم او دَ عربي يولسم حرف چې د ابجدو پهٔ حساب ئې شمېر اووهٔ دے-

زا :(زا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ښاروو دَ لنګېدو وخت- (۲)دَ أبو زيم- زاو- زاوے- (۳)زيمناکې زمکې نهٔ أبو وېستو لښتے-

زابر :(زا-بر)اسم- زاکښ- جر- هغه وَله يا لښتے چې خلقو پخپله جوړ کړے وی او دَ زيمناکې زمکې أبهٔ پکښې بلې خوا ته ووځی-

زاپران:(زاپ-ران)اسم- کنګو- زعفران- دَ پښتو قرات- نباتاتی نوم (ZAFFERANO)-

زاخکه:(زا-خهٔ-که)اسم- يو حلاله مرغی چې غوښه ئې خوره وی-

زاد :(زاد)اسم- توښه- خوراک- اذوقه- (م- فارسی)-

زاد :(زاد)اسم- پېدا شوے- (م- فارسی)-

زاد :(زاد)لاحقه- هغه لاحقه چې دَ خنو اسمونو سره يوځائ شی نو معنٰی ورکوی لکه پری زاد- ادم زاد وغېره-

زار :(زار)اسم- (۱)تکليف- رنځ- مصيبت- پرېشانی- (۲)ژړا- فرياد- ټاپ- (۳)کيله معنٰی- (۴)دَ "زهر" بل قرأت-

زار :(زار)اسم- (۱)بدبختی- بدمرغی- (۲)افسوس-

زار :(زار)لاحقه چې دَ نورو کلمو سره راځی لکه لاله زار-

زاربوټے :(زار-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- ګنډېرے- تريخ غرنيز بوټے- نباتاتی نوم (NERIUM ODORUM)- جمع زاربوټی-

زار جيو :(زار-جيو)کلمه- زار قُربان-

زارخند :(زار-خند)اسم- زهرخند- هغه خندا چې د سوخت يا شرمندګئ په سبب څرګنده شی- (م- فارسی)-

زار زار :(زار-زار)اسم صفت- پهٔ چغو چغو- پهٔ کوکو-

زارزمکی :(زار-زم-کی)اسم- دَ ترکاری يو قسم- (افغانستان)-

زارزنګی :(زار-زنګ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- مرغونے- مرغونې- منه غونې- کاکوړه- پوپانو-

زارضرور :(زار-ز-رور)متعلق فعل- خامخا- ضروری-

زارع :(زا-رع)اسم- کرونده ګر- بزګر- (م- عربی)-

زارمړے :(زار-مهٔ-ړے)اسم صفت- زاره چاودے- ورځ ګرځے- ګشتے- بدبخت- جمع زارمړي-

زارموره:(زار-مو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ زهرموره- يو انسانی عضو-

زارنالی :(زار-نا-لی)اسم- (۱)زاری- ژړا- فرياد- منت زاری- (۲)جغری وهنه- ايری وهنه-

زاره:(زا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ صفر کڅوړه- تريخے- ترخے-

زاره ترکی :(زا-ره-تر-کی)اسم- (۱)مړکېدنه- (۲)غم- زحمت- تکليف- زهره ترکی- زړهٔ چاودنه- (۳)ډېر ستړے کېدنه-

زاره ترکے :(زا-ره-تر-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مړ- (۲)مغموم- خفه- زړهٔ چاودے- (۳)ستړے- مؤنث زاره ترکې-

زاره چاودے :(زا-ره-چاؤ-دے)اسم صفت- زارمړے- مصيبت زده- غمزده- زاره ترکے- خوار و زار- جمع زاره چاودی-

زاری :(زا-ری)اسم- (۱)فرياد- منت- (۲)خوشامنده- (۳)چغې سورې-

زارېدل :(زا-رې-دل)مصدر لازم- خفه کېدل- پرېشانه کېدل-

زارېدن :(زا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زارېدل-

زارېدنګ :(زا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زارېدل-

زارېدنه :(زا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زارېدل-

زارېدونکے :(زا-رې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زارېدونکی- مؤنث زارېدونکې- وګورئ زارېدل-

زارېدهٔ :(زا-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ زارېدل-

زاړم بوئ :(زا-ړم-بوئ)اسم- دَ کپړې دَ سوزېدو بوئ- زاړومبے- زړومبے- زاړنبوئ- (افغانستان)-

زاړند :(زا-ړند)اسم- دَ کنډک نه بيل شوے ګډ يا ګډوړے- هغه ګډ يا ګډوړے چې دَ خپل کنډک نه بيل شی او بل کنډک کښې شامل شی-

زاړومبے :(زا-ړوم-بے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ زاړم بوئ- جمع زاړومبی-

زاړه لوغې :(زا-ړه-لو-غې)اسم- زړه لوغی- زاړې-

زاړې :(زا-ړې)اسم صفت- هغه پيور ښاروے چې دَ لنګتون ئې ډېره موده شوې وی او پئ پکښې کم شوی وی- زاړه لوغې-

زازړ :(زا-زړ)اسم- زار ضرور- خامخا- اړومرو-

زاړهٔ :(زا-ړهٔ)اسم صفت- جمع- مذکر- زېړ- ښاړ شپاړ- شړل بړل- دَ مهين او هوار ضد-

زاغ :(زاغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کارغهٔ- (۲)رقيب- هوښيار- زيرک- چالاک- جمع زاغان- (فارسی)-

زاغاړی :(زا-غا-ړی)اسم- واحد- مؤنث- دَ ايلی پهٔ رنګ يو قسم توره مرغی-

زاغچکه :(زاغ-چهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- کاغی- وراغه- زاغچه- سپينچکه غاړه لرونکے يو وړوکے کارغهٔ-

زاغچه :(زاغ-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ زاغچکه- جمع زاغچې-

زاغزوغ :(زاغ-زوغ)اسم صفت- غماز- چغلی خور- جمع زاغزوغان- مؤنث زاغزوغه- جمع مؤنث زاغزوغې-

زاغزوغی :(زاغ-زو-غی)اسم- مؤنث- غمازی- چغلی خوری- چُغلی-

زاغه :(زا-غه)اسم- واحد- مؤنث- سمڅ- کمرغالے- سمڅه- جمع زاغې-

زاغيړے :(زا-غی-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- لټ- ناراسته- جمع زاغيړی-

زاک :(زاک)اسم- (۱)خاوری- (۲)يو قسم غمے- زاګ-

زاکښ :(زا-کښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ زابر- جمع زاکښونه-

زاګ :(زاګ)اسم- واحد- مذکر- خاوری- پټکړے- پټکنے-

زاګی :(زا-ګی)اسم- واحد- مؤنث- دَ لمسی نه جوړ دَ ښځو خاص قسم لباس- کوڅو- کوڅ-

زال:(زال)اسم- بوډا- زوړ- (م- فارسي)-

زالمند:(زال-مند)اسم- واحد- مذکر- هغه پړې يا رسۍ چې د اوښ زنګون پرې د کښېناستلو د پاره تړلے شي- (افغانستان)-

زام:(زام)اسم- د "زعم" مغفن- قياس- ګومان- اټکل-

زامده:(زام-ده)اسم- واحد- مؤنث- په جبو کښې پېدا کېدونکے د وښو يو قسم چې د زخم د پاره پکارولے شي- جمع زامدې-

زامن:(زا-من)اسم- جمع- خامن- نارينه اولاد- د زوئ جمع-

زامه:(زا-مه)اسم- واحد- مؤنث- ژامنه- ژامه- برغبسے- زانبوړے- د ژامه بل قرأت- جمع زامې-

زانده:(زان-ده)اسم- واحد- مؤنث- زانډړه- زړۀ- خمير- جمع زاندې-

زانبوړے:(زان-بو-ړے)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ زامه-

زانغولے:(زان-غو-لے)اسم- واحد- مذکر- د زمکې د کنستو يو قسم اکه- وړوکے کلنګ- زړه کښتي- ميتے- کيے-

زانګل:(زانګ-ګل)مصدر- ځانګل- جوټې خوړل- په يو ځوړند څيز جوټې خوړل- ټال خوړل-

زانګلے:(زانګ-ګۀ-لے)اسم مفعول- جمع زنګلي- مؤنث زانګلې- وګورئ زانګل-

زانګن:(زانګ-ګن)حاصل مصدر- وګورئ زانګل-

زانګنه:(زانګ-ګۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زانګل-

زانګو:(زانګ-ګو)اسم- واحد- مؤنث- ځانګو- هغه ګواره چې ماشومان پکښې زنګولے شي- جمع زانګوګانې-

زانګوکے:(زانګ-ګو-کے)اسم- واحد- مذکر- اوښاره- اوښکی- د بی بی اوښه- پليپليکه- اښاره- يو شين رنګ لرونکې حشره چې ماشومان ورته وائي اوښې اوښې د اباسين اُبۀ څومره دي نو هغه پښې پورته کړي نو ماشومان وائي دومره-

زانګول:(زانګ-ګ-ول)مصدر متعدی- جوټې ورکول- ځانګول-

زانګون:(زانګ-ګ-ون)حاصل مصدر- وګورئ زانګول-

زانګونکے:(زانګ-ګ-وون-کے)اسم فاعل- جمع زانګونکي- مؤنث زانګونکې- وګورئ زانګول-

زانګونګ:(زانګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زانګول-

زانګونه:(زانګ-ګ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زانګول-

زانګه:(زانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- انګی- انګازه-

زانګه:(زانګ-ګه)اسم- قد- لوړوالے- زانګی-

زانګي:(زانګ-ګي)اسم- زانګه- قد- لوړوالے-

زاني:(زا-ني)اسم صفت- زناکار- بدکار- بدکاره- د زنا سره متعلق- (م- عربي)-

زانيه:(زا-ني-يه)اسم- زناکاره ښځه- جمع زانيې- (م- عربي)-

زانه:(زا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وړې پښې وده غاړه او تېره مښوکه لرونکې يو مارغۀ چې عموماً په اُبو کښې ژوند تېروي- سائنسي نوم (ANTHROPOIDOS VIRGO)- جمع زانې-

زاو:(زاو)اسم- واحد- مذکر- (۱)نو- نم- رطوبت- (۲)زا- زاوه- زاوے- هغه ځائې چې اُبۀ راکاږي-

زاوذات:(زاؤ-ذات)اسم- جمع- مذکر- بال بچ- زاوزاد- اولاد-

زاوزاد:(زاؤ-زاد)اسم- وګورئ زاوذات-

زاوزو:(زاو-زو)متعلق فعل- (۱)زار ضرور- هرومرو- خامخا- ضرور- (۲)د ناچارۍ- چار ناچار-

زاولن:(زاؤ-لن)اسم صفت- (۱)ژاولن- د ژاولې ماده لرونکے- (۲)ورغلے پرهر- (۳)بې کاره- تنبل- لټ- سُست- (۴)بې ځلې- بې ژبې- عاجز-

زاوله:(زاؤ-له)اسم- واحد- مؤنث- د ژاولې بل قرأت- وګورئ ژاوله-

زاويه:(زا-وي-يه)اسم- واحد- مؤنث- کُنج- ګوټ- هغه شکل چې د دوؤ مستقيمو کرښو د تقاطع سره جوړيږي- جمع زاويې-

زاوبل:(زا-وبل)اسم- خول- دزامداره واوره او باران چې يخني ورسره وي- (افغانستان)-

زاوے:(زا-وے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم تيږه چې مېده کړے شي نو د لوښو جوړولو د پاره نورو څيزونو سره يو ځائې کولے شي- جمع زاوي- (افغانستان)-

زاهد:(زا-هد)اسم صفت- واحد- مذکر- پرهېزګار- زهد و تقوىٰ کونکے- پارسا- عابد- جمع زاهدان-

زاهدي:(زا-هَ-دي)اسم- پرهېزګاري- تقوىٰ- تقوىٰ داري-

زايپه:(زا-ي-په)اسم- ښځه- ماينه- ماندينه- کوروداني- کډه- ارتينه- (افغانستان)-

زايچه:(زا-ي-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د منجم پېشګوني- (۲)د نوي ماشوم د ژوند د حالاتو پېشګوني-

زايد:(زا-يد)اسم صفت- (۱)زيات- ډېر- د پاسه- (۲)اضافه- علاوه- (م- فارسي)-

زايدتجنيس:(زا-يد-تج-نيس)اسم- د شاعري يو صنعت- (م- عربي)-

زاير:(زا-ير)اسم صفت- زيارت کرنکے- زيارت ته تلونکے- (م- عربي)-

زايل:(زا-يل)اسم صفت- ضائع- نابود- لۀ مينځه تللے- زوم- لرې- زهه- (م- فارسي)-

زايلول:(زا-ي-ل-ول)مصدر متعدی- کمول- نابودول- نيست کول- لۀ مېنځه وړل- ضائع کول- لرې کول- (م- عربي زائل)-

زايلونکے:(زا-ي-له-وون-کے)اسم فاعل- جمع زايلونکي- مؤنث زايلونکې- وګورئ زايلول-

زايلېدل:(زا-ي-لې-دل)مصدر لازم- نابودېدل- لۀ مېنځه تلل- زهېدل- ضائع کېدل- لرې کېدل-

زايلېدن:(زا-ي-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زايلېدل-

زايلېدنګ:(زا-ي-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زايلېدل-

"زبر" (ځ-بۀ-ره)، "زورکے" (ښل)، "پېش" (نو-کا-ره)، "زېر" (ک-تا-ب)، "جزم" (شکون)، "ۀ" (ز-ړه)، "ۀ" (بو-ښې-دۀ)

زایلېدنه:(زا-يْ-لې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زایلېدل-
زایلېدونکے:(زا-يْ-لې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع زایلېدونکی- مؤنث زایلېدونکې- وګورئ زایلېدل-
زایلېدهٔ:(زا-يْ-لې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زایلېدل-
زبات:(زبات)اسم- (۱)ښېګړه- نېکی- احسان- زباد- صفت- دَ احسان او ښو یادونه- (۲)ثابت- کلک- استوار- (افغانستان)-
زباتل:(زبا-تل)مصدر- پاستل- پاسلل- پاسېلل- احسان یادول- نېکی او مینه یادول-
زباتلے:(زبا-تهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زباتلی- مؤنث زباتلې- وګورئ زباتل-
زباتن:(زبا-تن)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتل-
زباتنه:(زبا-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتل-
زباتول:(زبا-ته-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)وګورئ زباتل- (۲)ثابتول- ثبوتول- زبادول-
زباتون:(زبا-ته-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتول-
زباتونکے:(زبا-ته-وون-کے)اسم فاعل- جمع زباتونکی- مؤنث زباتونکې- وګورئ زباتول-
زباتونګ:(زبا-ته-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتول-
زباتونه:(زبا-ته-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتول-
زباتېدل:(زبا-تې-دَل)مصدرِ لازم- زبادېدل- ثبوتېدل- ثابتېدل-
زباتېدن:(زبا-تې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتېدل-
زباتېدنګ:(زبا-تې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتېدل-
زباتېدنه:(زبا-تې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زباتېدل-
زباتېدونکے:(زبا-تې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع زباتېدونکی- مؤنث زباتېدونکې- وګورئ زباتېدل-
زباتېدهٔ:(زبا-تې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زباتېدل-
زباد:(زباد)اسم- وګورئ زبات-
زبادول:(زبا-دَ-وَل)مصدرِ متعدی- زباتول- ثابتول- ثبوتول-
زبادون:(زبا-دَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زبادول-
زبادونکے:(زبا-دَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع زبادونکی- مؤنث زبادونکې- وګورئ زبادول-
زبادونګ:(زبا-دَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زبادول-
زبادونه:(زبا-دَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زبادول-
زبادېدل:(زبا-دې-دل)مصدرِ لازم- زباتېدل- ثابتېدل- ثبوتېدل-
زبادېدن:(زبا-دې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زبادېدل-
زبادېدنګ:(زبا-دې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زبادېدل-
زبادېدنه:(زبا-دې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زبادېدل-
زبادېدونکے:(زبا-دې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع زبادېدونکی- مؤنث زبادېدونکې- وګورئ زبادېدل-
زبادېدهٔ:(زبا-دې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زبادېدل-
زبان:(زُ-بان)اسم- (۱)ژبه- (۲)وعده- ژبان-
زبانی:(زُ-با-نی)اسمِ صفت- پهٔ خلهٔ وئیلے شوے- پهٔ خُلهٔ- پهٔ ژبه- (۲)دَ ژبې سره متعلق- شفاهی-
زبده:(زُب-ده)اسمِ صفت- غوره- مهم- زبردست- معروف- ښکاره-
زبر:(زَ-بَر)صفت- دا توری عموماً دَ "زېر" سره راځی لکه زېر و زبر- خراب تراب- ګډوډ-
زبر:(زَ-بَر)صفت- زورور- قوی-
زبر:(زَ-بَر)علامت- دَ "ا" نیمه چې نیم علامت ګڼلے شی- فتحه-
زبر:(زَ-بَر)اسم- یاد- زوت- حافظه کښې- ازبر-
زبرجد:(زَ-بر-جَد)اسم- سنیګښے- یو قسم زمرد- قیمتی کاڼے- (م- عربی)-
زبردست:(زَ-بر-دَست)اسم صفت- تکړه- زورور- غښتلے- قوی- (۲)ښکاره- وتلے- (۳)دَ قدرت خاوند- (۴)دَ مهارت خاوند- ماهر-
زبردستی:(زَ-بَر-دَس-تی)اسم- زورورتیا- زوروری- (۲)ماهرتیا- مهارت-
زبرګ:(زبرګ)صفت- (۱)بزرګ- مشر- (۲)دَ برخې خاوند- ولی- جمع زبرګان-
زبرګه:(زبر-ګه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- دَ زبرګ مؤنث- وګورئ زبرګ-
زبرګه میاشت:(زبر-ګه-میاشت)اسم- بزرګه میاشت-
زبرګی:(زبر-ګی)اسم- (۱)مشری- لويْ والے- (۲)دَ زبرګ جوړېدو حالت- پرهېزګاری- وګورئ زبرګ-
زبرول:(زبه-ر-وَل)مصدر- (۱)پهٔ یاد وئیل- ښهٔ یادول- ازبر کول- (۲)وُچتول- (۳)احسان کول-
زبرون:(زبه-ر-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زبرول-
زبرونکے:(زبه-ر-وون-کے)اسم فاعل- جمع زبرونکی- مؤنث زبرونکې- وګورئ زبرول-
زبرونګ:(زبه-ر-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زبرول-
زبرونه:(زبه-ر-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زبرول-
زبره:(زب-ره)اسم- یو قسم بوټے چې پهٔ شګلن ځایْ کښې پېدا کېږی او دَ سوزولو دَ پاره پکارېږلے شی-
زبغراند:(زب-غه-ړاند)اسم صفت- (۱)ژبغړاند- نوے پهٔ خبرو راغلے ماشوم- (۲)ژبور- (افغانستان)-
زبکه:(زب-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ غرهٔ شپېشتی- دَ غرهٔ رشقه- یو قسم واښهٔ- (افغانستان)-
زبل:(زَ-بل)مصدر- کوټل- مېده کول-
زبلتوب:(زَ-بل-توب)اسم- زبلتیا- زبل والے- مېده توب-
زبلتیا:(زَ-بل-تیا)اسم- وګورئ زبلتوب-

"ی" (څې-رَل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ى"(پیا-لې)، "ے"(تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

زبلوالے:(زَ-بَل-وا-لے)اسم- وګورئ زبلتوب-

زبله:(زَب-لَه)متعلق فعل- وګورئ خبله-

زبلے:(زبه-لے)اسم- واحد- مذکر- کورنی- زوذات- زوناد- تراک- جمع زبلی- (افغانستان)-

زبن:(زَ-بَن)اسم صفت- بې درده- بې رحمه- سخت زړے- حیوان- جاهل- لواړ-

زبن:(زَ-بِن)حاصل مصدر- وګورئ زبل-

زبنه:(زَ-بهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زبل-

زبور:(زَ-بور)اسم- واحد- مذکر- پهٔ داؤد علیه السلام نازل شوے اسمانی کتاب- (م- عبرانی)-

زبول:(زَ-به-وَل)مصدر متعدی- خوارول- زبونول- پامالول-

زبولے:(زَ-به-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زبولی- مؤنث زبولې- وګورئ زبول-

زبون:(زَ-بُون)اسم- (۱)مزه- ذائقه- خوند- (۲)ژبه- زبه- (افغانستان)-

زبون:(زَ-بُون)اسم صفت- ذلیل- خوار- کمزورے- خوربدلے- عاجز- لاغر-

زبون:(زَ-به-وَن)حاصل مصدر- وګورئ زبول-

زبونتوب:(زَ-بُون-توب)اسم- زبونتیا- زبنه- خواری-

زبونتیا:(زَ-بُون-تیا)اسم- وګورئ زبون توب-

زبونکے:(زَ-بُون-کے)اسم فاعل- جمع زبونکی- مؤنث زبونکې- وګورئ زبل-

زبونکے:(زه-به-وون-کے)اسم فاعل- جمع زبونکی- مؤنث زبونکې- وګورئ زبول-

زبونګ:(زَ-به-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زبول-

زبونول:(زَ-بُو-نَ-وَل)مصدر- ذلیلول- خوارول- خورول- عاجزول-

زبونون:(زَ-بُو-نَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ زبونول-

زبونونکے:(زَ-بُو-نَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع زبونونکی- مؤنث زبونونکې- وګورئ زبونول-

زبونونګ:(زَ-بُو-نَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زبونول-

زبونونه:(زَ-بُو-نَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زبونول-

زبونی:(زَ-بُو-نی)اسم- دړد- کم طاقتی- عاجزی- خرابتیا- خرابی-

زبونېدل:(زَ-بُو-نې-دَل)مصدر- خوارېدل- ذلیل کېدل- عاجز کېدل- زبون کېدل-

زبونېدن:(زَ-بُو-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ زبونېدل-

زبونېدنګ:(زَ-بُو-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زبونېدل-

زبونېدنه:(زَ-بُو-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زبونېدل-

زبونېدونکے:(زَ-بُو-نې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع زبونېدونکی- مؤنث زبونېدونکې- وګورئ زبونېدل-

زبونېدهٔ:(زَ-بو-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زبونېدل-

زبه:(زهٔ-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ژبه- (۲)لوظ- وعده- اقرار- جمع زبې-

زبه:(زَبه)اسم- بزه- وُزه- جمع زبې-

زبیب:(زَ-بیب)اسم- (۱)خُشک انګور- (۲)خُشک اینځر-

زبېرګے:(زَبېر-ګے)اسم- پهٔ بیماری یا سختئ کښې فریاد- زوېرګے- زګېروے- فریاد-

زبېښ:(زَبېښ)اسم- (۱)خبېښ- جذبونه- زبېښته- (۲)چوشنه- چوپنه-

زبېښناک:(زبېښ-ناک)اسم- اپونه- مېوه ټولونه- دَ بل لهٔ محنته فائده اخسته-

زبېښل:(زَبې-ښَل)مصدر- (۱)خبېښل- چوپل- (۲)جذبول- راکښل- (۳)نچوړول- نښتېځل-

زبېښلے:(زَبې-ښهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زبېښلی- مؤنث زبېښلې-.وګورئ زبېښل-

زبېښن:(زَبې-ښَن)حاصل مصدر- وګورئ زبېښل-

زبېښند:(زَبې-ښَند)اسم صفت- (۱)چوپونکے- (۲)جذب کونکے- جاذب-

زبېښندوکے:(زَبې-ښَن-دُو-کے)اسم فاعل- (۱)چوشک- (۲)زبېښونکے-

زبېښنګ:(زَبې-ښَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زبېښل-

زبېښنه:(زَبې-ښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زبېښل-

زبېښونکے:(زَبې-ښُون-کے)اسم فاعل- جمع زبېښونکی- مؤنث زبېښونکې- وګورئ زبېښل-

زبېکے:(زبېک-کے)اسم- کوربونے- خښتګ- ژبونکے- زبینکے- (افغانستان)-

زبېل:(زَبې-لَل)مصدر- (۱)زبېښل- چوپل- (۲)جذبول- راکښل- (۳)نچوړول- نښتېځل-

زبېللے:(زَبې-لهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زبېللی- مؤنث زبېللې- وګورئ زبېلل-

زبېلن:(زَبې-لَن)حاصل مصدر- وګورئ زبېلل-

زبېلنګ:(زَبې-لَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زبېلل-

زبېلنه:(زَبې-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زبېلل-

زبېلونکے:(زَبې-لون-کے)اسم فاعل- جمع زبېلونکی- مؤنث زبېلونکې- وګورئ زبېلل-

زبېنګے:(زبېنګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- کوربونے- خښتګ- ژبونکے- دَ پرتوګ رومال- زبېکے-

زبی:(زَ-بی)اسم- وګورئ ژبی- (افغانستان)-

زپ:(زَپ)اسم صفت- زوړ- کمزورے- ضعیف-

زته:(زَ-ته)اسم صفت- زوته- پهٔ زوره زوره-

زجر:(زَ-جَر)اسم- خور- کړاؤ- تکلیف- زحمت- خورونه- شکنجه- ترټنه- ستونه- (عربی)-

زخغوړے:(زَخ-غو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ ګهوری تلېدلې غوښه- جمع زخغوړی-

زُحل:(زُ-حَل)اسم- دَ شمسی نظام لهٔ نهو ستوریو نه یو-

زحمت:(زَح-مَت)اسم- رېړ- کړاؤ- کړاک- تکلیف- جمع زحمتونه-

زحمت کښ:(زَح-مَت-کښ)اسم- زیارکښ- خواری کښ-

زبر "(غ-بهٔ-ره)"، "زورکے" (شل)، "پېش" (نو-کا-ره)، "زیر" (ک-تاب)، "جزم" (شکون)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ" (پو-ہې-دهٔ)

زحمتي:(زح-مه-تي)اسم- (۱)زیارکښ- خواری کښ- (۲)زحمت لرونکے- په تکلیف کښې-

زخته:(زخ-ته)اسم- واحد- مذکر- جخته- کنډوله- يو قسم وانهٔ چې ماشومان يې جړې خوري- (افغانستان)-

زخم:(ز-خم/زخم)اسم- (۱)پرهر- پرمار- پرار- ټپ- (۲)خارخوري- کرزنے- ځرخاږ- بغرې- زغومے- غرومبے- ګرداږ- (افغانستان)-

زخچه:(زخ-چه)اسم- واحد- مؤنث- د پسرلي په موسم کښې راټوکېدونکے بوټے چې وبخ يې خوړلے شي- جمع زخچې-

زخمانه:(زخ-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه روپۍ پيسې چې د زخميانو د تاوان په جُرم کښې ورکولے شي-

زخمتي:(زخ-مه-تي)اسم صفت- (۱)زيارکښ- زحمت وچتونکے- (۲)مشکل- سخت-

زخمک:(زخ-مک)اسم- زخمه- شهباز- د رباب غوږلو آله-

زخمه:(زخ-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ زخمک- جمع زخمې-

زخمي:(زخ-مي)اسم صفت- واحد- مذکر- ژوبل- ټپي- پرهرژلے- خوږ- جمع زخميان-

زخن:(زهٔ-خن)اسم صفت- زخداره- خنډ لرونکے- زخه لرونکے- غټې غټې (لرګے)-

زخن توب:(زهٔ-خن-توب)اسم- زخن والے- زخې لرنه-

زخن والے:(زهٔ-خن-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ زخن توب-

زخه:(زهٔ-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د وجود په يوه برخه راختلې زياتي شان غوښه- دانه- (۲)خنډ- غټه- (۳)د ټوپک يا تماچې غټې- زرے-

زخيره:(زَ-خي-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بوزغلے- بزغلے- (۲)پنکه- پانکه- پاسره- زېرمه- جمع زخيرې-

زخيره:(ز-خي-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ذخيره- (۲)د ساتنې از خوندي کولو ځاې-

زد:(زد)اسم- تاثير- اثر- اغېزه-

زد:(زد)اسم- د سيند لاره-

زدايت:(زَ-دا-يت)اسم- اصل- کورنۍ- ختَه- نسب- قام- ټبر-

زدکړه:(زدَ-ړه)اسم- (۱)زده کونه- پوهېدنه- (۲)کلانکارى-

زدکول:(زده-که-ول)مصدر متعدي- زدکړه کول- پوهېدل- تعليم حاصلول- د پوهېدلو د پاره کوشش کول-

زدکون:(زده-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ زدکول-

زدکونکے:(زده-که-ون-کے)اسم فاعل- جمع زدکونکی- مؤنث زدکونکې- وګورئ زدکول-

زدکونګ:(زده-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زدکول-

زدکونه:(زده-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زدکول-

زدکېدل:(زده-کې-دل)مصدر لازم- پوهه حاصلېدل- پوهېدل-

زدکېدن:(زده-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زدکېدل-

زدکېدنګ:(زده-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زدکېدل-

زدکېدنه:(زده-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زدکېدل-

زدکېدونکے:(زده-کې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زدکېدونکی- مؤنث زدکېدونکې- وګورئ زدکېدل-

زدکېدهٔ:(زده-کې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ زدکېدل-

زدول:(زده-ول)مصدر- زدوول- مښل- سولول- په تدريج سره کمول- مړل-

زدون:(زده-ون)حاصل مصدر- وګورئ زدول-

زدونکے:(زده-وون-کے)اسم فاعل- جمع زدونکی- مؤنث زدونکې- وګورئ زدول-

زدونګ:(زده-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زدول-

زدونه:(زده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زدول-

زدونې:(زدو-نې)اسم- واحد- مؤنث- چکې- غنهارے- د ټرتو چکې-

زدوول:(زدو-ول)مصدر- زدول- مښل- مړل- سولول- په تدريج سره کمول- رسېيل-

زدوولے:(زدو-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زدوولي- مؤنث زدوولې- وګورئ زدوول-

زدوون:(زدو-ون)حاصل مصدر- وګورئ زدوول-

زدوونکے:(زدو-وون-کے)اسم فاعل- جمع زدوونکی- مؤنث زدوونکې- وګورئ زدوول-

زدوونګ:(زدو-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زدوول-

زدوونه:(زدو-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زدوول-

زدويل:(زدو-يل)مصدر- (۱)زدول- زدوول- مښل- سولول- رسېيل- (۲)ويلې کول- (۳)بربښول- (۴)غربدل-

زدويلے:(زدو-يهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زدويلي- مؤنث زدويلې- وګورئ زدويل-

زدوين:(زدو-ين)حاصل مصدر- وګورئ زدويل-

زدوينګ:(زدو-ينګ)حاصل مصدر- وګورئ زدويل-

زدوينه:(زدو-يهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زدويل-

زدوينکے:(زدو-ين-کے)اسم فاعل- جمع زدوينکی- مؤنث زدوينکې- وګورئ زدويل-

زدويونکے:(زدو-يون-کے)اسم فاعل- جمع زدويونکی- مؤنث زدويونکې- وګورئ زدويل-

زده:(زده)صفت- په ياد- په حافظه کښې زوت- زده شوے- حفظ-

زده:(زَ-ده)اسم صفت- (۱)وهلے- ځپلے- خپلے- خمبلے- (۲)غمژن- غمګين- خفه- (۳)لګېدلے- داغي شوے-

زدې:(ز-دې)اسم- صدی- پېړۍ- ترن- د سلو کالو موده- (افغانستان)-

زر:(زر)اسم- (۱)يو قيمتي دات- (۲)دولت- مال- سره-

ئ (ښې-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پيا-لی)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

زر :(زَر)اسم عدد- هزار- لس خله سل- دَ شمار يوه اکائی- ۱۰۰۰-

زر :(زَر)متعلق فعل- دَ ژر مفغن- پۀ بيړه- تېز- ګړندے- جلت-

زراعت:(زَ-را-عَت)اسم- کر- کښت- کرهڼه- کرنه-

زراعتی:(زَ-را-عَ-تی)اسم- دَ زراعتٔ سره متعلق-

زرافه:(زَ-را-فه)اسم- واحد- مؤنث- اوښ پړانګ- يو قسم اوښه- شترګاو-

زراندود:(زر-ان-دود)صفت- پۀ زرو لړلے- زرلے- ګلېټ-

زرایه:(زَ-را-يه)اسم- (۱)تېز- تېز قدم- (۲)تېز ګټېدنه-

زرب:(زرب)اسم- (۱)زرپ- شِدت- (۲)غلبه- برے- (۳)پرتم- (افغانستان)-

زربرخ:(زر-ب-رخ)اسم- (۱)ډېرے- زرورق- زرپاڼه- (۲)ابرک- شګوګل- شګے- رڼوکے-

زربفت:(زَر-بفت)اسم- واحد- مذکر- زرناپ- کين خاب- کمخاب- يو ريښمين ټوکے-

زربوزے:(زرَ-بو-زے)اسم- يو قسم کېدون چې زرتار څخه جوړيږی- (افغانستان)-

زربيانګ:(زر-بيانګ)اسم- واحد- مذکر- زربېنک- دَ لرګی جوړه دَ موچيانو يوه آله چې څرمن پرې نرۍ کوی او صفا کوی-

زربېره:(زَر-بې-ره)اسم- دَ پوزې دَ نسوارو پۀ ځاې پکارېدونکے يو قسم وابښۀ چې دَ وُچولو نه پس مېده کولے شی- (افغانستان)-

زربی:(زر-بی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پسخانه- ګودام- سټور- دَ کور هغه کوټه چې دَ کودام پۀ توګه پکارولے شی- (۲)دَ خښتو هغه رده چې دَ ګومبت (ګنبد) دَ ټينګوالی دَ پاره دَ خښتو پۀ مېنځ کښې لګولے شی-

زربے:(زَر-بے)اسم- واحد- مذکر- دَ بوټ يا څپلی دَ وندنيو سوری کولو يوه آله- (افغانستان)-

زرپ:(زَرپ)اسم- وګورئ زرب-

زرپاڼه:(زَر-پا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- زرورق- زربرخ- دَ زروپاڼه- جمع زرپاڼې-

زرپترکے:(زر-پت-رَ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ زرو وړوکے پترے- جمع زرپترکی-

زرپرست:(زَر-په-رست)اسم صفت- دَ دولت سره مينه لرونکے-

زرپرستی:(زَر-پَ-رس-تی)اسم- دَ زرپرست جوړېدو حالت-

زرپېښ:(زَر-پېښ)اسم- زرګر- دَ زر کار کونکے-

زرپېرلے:(زر-پې-رۀ-لے)اسم- زرخريد- پۀ بيعه اخستے شوے-

زر تر زره:(زَر-تر-زۀ-ره)متعلق فعل- ژر تر ژره- سمدستی- فوراً- ډېر ژر-

زرتشت:(زر-تشت)اسم- زردښت- زرتشتی- زرتشتر- زرتشترا- دَ زردښتی منصب خاوند چې اور ته يې سجده کوله-

زرتشتر:(زر-تښ-تر)اسم- وګورئ زرتشت-

زرتشترا:(زر-تش-ترا)اسم- وګورئ زرتشت-

زرتشتی:(زر-تش-تی)اسم- دَ زرتشت دَ عقيدې سره تعلق لرونکے- وګورئ زرتشت-

زرتلۀ:(زر-تۀ-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ سرو او سپينو دَ تللو کنډه- زرکنډه-

زرټاپونے:(زَر-ټا-پَ-وو-نے)اسم صفت- ټک سال- ټاپه وهونکے- پۀ اشرفيو ټاپه لګونکے- روپۍ او اشرفۍ جوړونکے-

زرټوکے:(زر-ټو-کے)اسم- هغه کپړه چې دَ تيلۍ کار پرې شوے وی- جمع زرټوکی- (افغانستان)-

زرخ:(زرخ)اسم صفت- خرڅ- پۀ سُور کښې شين رنګ لرونکے-

زرخوابی:(زَر-خَ-وا-بی)اسم- حاضر جوابی- حاضر دماغی- (افغانستان)-

زرخوابے:(زَر-خَ-وا-بے)اسم صفت- حاضر جواب- حاضر دماغ- ژرِ ځواب کونکے- جمع زرخوابی-

زرخې سترګې:(زَر-خې-سَتر-ګې)اسم- سرې شين بخنې سترګې- (افغانستان)-

زرخے:(زرَ-خے)اسم- زرنې- لوشه- بدبويه خټه يا چيکړ-

زرخے:(زرَ-خے)اسم- واحد- مذکر- خرڅ- هغه ګډ چې دَ غوږونو او سترګو خواؤشا وېښتۀ يې زيږ وی- جمع زرخی-

زرچوبه:(زر-چو-به)اسم- واحد- مؤنث- کورکمان- کورکمن- جمع زرچوبې-

زرخريد:(زر-خَ-ريد)اسم صفت- وګورئ زرپېرلے-

زرخېز:(زر-خېز)اسم صفت- (۱)اباد- شاداب- تر و تازه- (۲)زيات پېداوار کونکے-

زردار:(زر-دار)اسم صفت- شتۀ من- بدائی- دولت مند- جمع زرداران-

زرداری:(زر-دا-ری)اسم- دَ زردار جوړېدو حالت-

زردالو:(زر-دا-لو)اسم- خوبانی- مندته- زيړ غنجی- زيړ رنګ لرونکې يو قسم وُنه او دَ هغې مېوه- جمع زردالان/زردالوګان-

زردښت:(زر-دښت)اسم- وګورئ زرتشت-

زردښتی:(زر-دښ-تی)صفت- دَ زردښت سره متعلق-

زردکه:(زر-دَ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګاځره- (۲)زيړانکه- زيرکه- ژړانکه- زيړ رنګ لرونکې يوه مرغۍ-

زردوم:(زَر-دوم)صفت- زهرقاتل- (افغانستان)-

زرده:(زر-ده)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)پۀ پان کښې دَ خوړلو تماکو- (۲)زيړ رنګ لرونکې خوږې وريژې-

زرډانګے:(زَر-ډانګ-کے)اسم- کروه- کرو- دَ فاصلی يوه اکائی چې دوه کلوميټره وی- (افغانستان)-

زرزيو:(زَر-زَ-يو)اسم- ناشاپه وهنه- ناشاپه ګوزار- يو پۀ يو وهنه- (افغانستان)-

زرزری:(زَر-زَ-ری)اسم- زرين- زربفت- هغه کپړه چې دَ تيلۍ نه جوړه شوې وی-

زرزری:(زر-زۀ-ری)اسم صفت- اله پته- وارخطا- بيړه ناک- تلوارکرندے- تلواری-

زبر (ځ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ه (ز-ږه)، ۀ (يو-بې-دۀ)

زرزرین:(زر-زه-رین)اسم صفت- زرزری- زرین- لهٔ زرو جوړ-

زرزې:(زر-زې)اسم صفت- جمع- مؤنث- خُمارې- ملالې- سوربخنې (سترګې)- خرخې-

زرزری:(زر-زه-ری)اسم- دَ زری ټوکړې (رخت) یو قسم-

زرشک:(ز-رشک)اسم- وګورئ زړک-

زرشوئی:(زر-شو-ئي)اسم- دَ زرشوئ کار-

زرشوے:(زر-شوے)اسم- دَ غوائی دَ څرمنې پهٔ ذریعه لهٔ شګې زر بیلونکے- جمع زرشوی-

زرغا:(زر-غا)اسم صفت- تازه- زرغُن- تروتازه- غوړېدلے- سمسور-

زرغاله:(زر-غا-له)اسم- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې پهٔ ځلوېښتی کښې وی او دَ لنګنون ئې لا ځلوېښت ورځې نهٔ وی پوره شوې- جمع زرغالې-

زرغُن:(زر-غُن)اسم صفت- (۱)شین زیړبخن رنګ- (۲)ټوکېدلے- مؤنث زرغُنه-

زرغنتوب:(زر-غن-توب)اسم- زرغنتیا- زرغنولے- شینوالے- راټوکېدنه-

زرغنتیا:(زر-غن-تیا)اسم- وګورئ زرغنتوب-

زرغن ګلے:(زر-غن-ګ-لے)اسم- واحد- مذکر- زرغون ګلے- آبی رنګ لرونکے یو خودرو بوټے چې پهٔ غنمو کښې راټوکیږی- جمع زرغُن ګلی-

زرغنوالے:(زر-غن-وا-لے)اسم- وګورئ زرغن توب-

زرغنول:(زر-غ-نه-ول)مصدر- ټوکول- شنهٔ کول- زرغونول-

زرغنون:(زر-غ-نه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغنول-

زرغنونکے:(زر-غ-نه-ون-کے)اسم فاعل- جمع زرغنونکی- مؤنث زرغنونکې- وګورئ زرغنول-

زرغنونګ:(زر-غ-نه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغنول-

زرغنونه:(زر-غ-نه-وه)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغنول-

زرغُنه:(زر-غ-نه)اسم- مؤنث- شنه- شینکے- سبزه زار- شنه زرغونه-

زرغُنېدل:(زر-غ-نې-دل)مصدر- (۱)ټوکېدل- شنهٔ کېدل- (۲)زرغُن رنګ اخستل- (۳)نېک مرغه کېدل- بختور کېدل- زرغونېدل-

زرغنېدن:(زر-غ-نې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغنېدل-

زرغنېدنګ:(زر-غ-نې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغنېدل-

زرغنېدنه:(زر-غ-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغنېدل-

زرغنېدونکے:(زر-غ-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زرغنېدونکی- مؤنث زرغنېدونکې- وګورئ زرغنېدل-

زرغنېدهٔ:(زر-غ-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زرغنېدل-

زرغون:(زر-غون)صفت- وګورئ زرغن-

زرغونتوب:(زر-غون-توب)اسم- وګورئ زرغنتوب-

زرغونتیا:(زر-غون-تیا)اسم- وګورئ زرغنتیا-

زرغونکے:(زر-غون-کے)اسم- ساګ- سابهٔ- (افغانستان)-

زرغون ګلے:(زر-غون-ګ-لے)اسم- وګورئ زرغُن ګلے-

زرغون مازو:(زر-غون-ما-زو)اسم- دَ دارو او رنګرېزی دَ پاره پکارېدونکې دَ پېرګی پهٔ شان یوه ونه او دَ هغې مېوه-

زرغون والے:(زر-غون-وا-لے)اسم- وګورئ زرغنوالے-

زرغونېدل:(زر-غو-نې-دل)مصدر- وګورئ زرغُنېدل-

زرغونېدن:(زر-غو-نې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغُنېدن-

زرغونېدنګ:(زر-غو-نې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغُنېدنګ-

زرغونېدنه:(زر-غو-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زرغُنېدنه-

زرغونېدونکے:(زر-غو-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زرغونېدونکی- مؤنث زرغونېدونکې- وګورئ زرغُنېدونکے-

زرغونېدهٔ:(زر-غو-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زرغُنېدهٔ-

زرغه:(زر-غه)اسم- سُستی- لټی- کاهلی- ناراستی- ټمبلی-

زرق:(زرق)اسم- بدن ته دَ ستنې (انجکشن) په ذریعه دارو داخلونه او پهٔ دغه بیماری کښې پکارېدونکی اوزار لکه پیچکاری او سېرنج وغېره- (افغانستان)-

زرق:(زرق)اسم- مکر- فرېب- چال- دوکه- (م- فارسی)-

زرک:(زرک)اسم- واحد- مذکر- جرک- ژرک- یو حکیمی دارو-

زرک:(زرک/زرک)اسم- واحد- مذکر- ښایسته سترګې لرونکې یو مارغه- دَ زرکې مذکر-

زرکاره:(زر-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ سرو زرو دَ کار څیز- (۲)قیمتی څیز- (م- فارسی)-

زرکاڼے:(زر-کا-ڼے)اسم- واحد- مذکر- دَ زرو دَ اصلیت دَ معلوملو دَ پاره پکارونکے تور کاڼے- جمع زرکاڼی-

زرکبورے:(زر-ک-بو-رے)اسم- زرکوړے- دَ زرکې بچے- جمع زرکبوری-

زرکنډه:(زر-کن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سرو زرو دَ تللو تله- جمع زرکنډې-

زرکوړے:(زر-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ زرکبورے- جمع زرکوړی-

زرکه:(زر-که/زر-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ زرک مؤنث- وګورئ زرک- جمع زرکې-

زرکیره:(زر-کی-ره)اسم- واحد- مؤنث- تریخ خوند لرونکے یو قسم شنهٔ واښهٔ چې دَ ولو پهٔ غاړه یا پهٔ غنمو کښې راشین کیږی، دَ نیم سری او نزلې علاج دَ پاره پکارولے شی-

زرګر:(زر-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ زرو کار کونکے- چې دَ زرو کالی پتری جوړوی- جمع زرګران-

زر ګرایه:(زر-ګرا-یه)صفت- زر چنده- زر کرته- زر وارې- زر ځلې-

زرګردان:(زر-ګر-دان)اسم- پهٔ نمناکه او نمژنه زمکه کښې پېدا کېدونکے یو قسم واښهٔ چې تخم ئې زهرناک وی-

زرګری:(زر-ګهٔ-ري)اسم- دَ زرګر کار او پېشه-

زرګل:(زر-ګل)اسم- دَ یو قسم ګل نوم- (افغانستان)-

"ئ" (ځی-رل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ئ"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

زرکنډیے:(زر-کنډ-یے)اسم- زری څیزونه کنډونکے-

زرکوړے:(زر-کو-ړے)اسم- وګورئ زرکبوړے-

زرکون:(زر-کون)اسم صفت- زرکونی- د زرو عدد سره متعلق- د زرو نوټ-

زرکونه:(زر-کو-نه)اسم صفت- زر چنده- په زر کرته-

زرکونے:(زر-کو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ زرکون- جمع زرکونی-

زرکه:(زر-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم زرغن بوټے- جمع زرکې-

زرکیر:(زر-کیر)اسم- واحد- مذکر- (۱)د خرمنې مغه ګټمه چې غشی ویشتونکی یا موچیان ئې په ګته کوی-

زرل:(ز-رل)مصدر- ګلبټول- ملمع کول- د سرو اُبه ورکول-

زرلښته:(زر-لښ-ته)اسم- د زرو لښته- (افغانستان)-

زرلګ:(زر-لګ)اسم- وګورئ جرلګ- (افغانستان)-

زرلے:(ز-رۀ-لے)اسم مفعول- جمع زرلی- مؤنث زرلې- وګورئ زرل-

زرم:(زۀ-رم)اسم عدد- د زرو (۱۰۰۰) د هندسې صفتی شکل- مؤنث زرمه-

زرمشر:(زر-مۀ-شر)اسم صفت- د زرو کسانو مشر- (افغانستان)-

زرمک:(زر-مک)اسم- یو تریخ بوټے از د هغې میوه-

زرمه:(زۀ-رۀ-مه)اسم عدد- د زرو (۱۰۰۰) د هندسې مؤنث صفتی شکل-

زرنخه:(ز-رن-خه)اسم- زرڼه- زرنه- لوښه- زرڼی- زنخه- زرنخی- ټینګه- بدبویه او سخا خټه- (افغانستان)-

زرنخی:(ز-رن-خی)اسم- وګورئ زرنخه-

زرند:(ز-رند)اسم- ننخړۀ- رنخړۀ- رانخړۀ-

زرندګړے:(زرن-ده-ګۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- ژرنده ګړے- د ژرندې چلونکے- جمع زرندګړی- (افغانستان)-

زرنده:(زرن-ده)اسم- واحد- مؤنث- ژرنده- د اوړو اوړلو یوه آله چې په اُبو چورلی- جمع زرندې- (افغانستان)-

زرندی:(زرند-دی)اسم- ناکاړی- زبرخانه- ته خانه- (افغانستان)-

زرنګ:(ز-رنګ)اسم- وګورئ زړک-

زرنګ:(ز-رنګ)صفت- هوښیار- زیرک- چالاک- تېز- (افغانستان)-

زرنګار:(زر-ن-ګار)صفت- (۱)د زرو په اُبو لیکلے شوے- (۲)ښکلے- ښائسته- (۳)محبوب-

زرنګی:(ز-رنګ-کی)اسم- زیرکی- چالاکی- هوښیاری- (افغانستان)-

زرنه:(زر-نه)اسم- وګورئ زرنخه- (افغانستان)-

زرنه:(زه-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زرل-

زرنۀ:(زر-نۀ)اسم- رنخړۀ- ننخړۀ- رانخړۀ- چوړیل- (افغانستان)-

زرنی:(زر-نی)اسم- څارنه- په نظر کښې ساتنه- (افغانستان)-

زرنیخ:(زر-نیخ)اسم- اړتال- هرتال- زیړه سنکیا- زرنیق- مړک جړ- (م- فارسی)-

زرنیخے:(زر-نی-خے)اسم- واحد- مذکر- ساچمے- د ټوپک چړه- جمع زرنیخی-

زرنیق:(زر-نیق)اسم- وګورئ زرنیخ-

زرنے:(ز-ر-نے)صفت- (۱)زرے- (۲)مُخبر- جاسوس- جمع زرنی- (افغانستان)-

زرنۀ:(زر-نۀ)اسم- رانخړۀ- رنخړۀ- ننخړۀ-

زرڼی:(زر-ڼی)اسم- وګورئ زرنخه- (افغانستان)-

زرڼے:(زر-ڼے)اسم صفت- جذامی- د جذام بیمار- جمع زرڼی-

زرو:(ز-رو)اسم- ژوره- جوکه- ژوکه- زوره- هغه حشره چې د انسان وینه څښی- (م- فارسی)-

زروبول:(ز-رو-به-ول)مصدر- زرل- د زرو اُبه ورکول- (افغانستان)-

زروبون:(ز-رو-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ زروبول-

زروبونکے:(ز-رو-به-وون-کے)اسم فاعل- جمع زروبونکی- مؤنث زروبونکې- وګورئ زروبول-

زروبونګ:(ز-رو-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زروبول-

زروبونه:(ز-رو-به-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زروبول-

زروبه:(ز-رو-به)اسم- خوناب- سراونیے- زیروبیے- زوه- هغه نو چې وینې سره یوځای وی-

زروبېدل:(ز-رو-بې-دل)مصدر لازم- زرلے کېدل- د زرو اُبه ورکولے کېدل- ملمع کېدل- (افغانستان)-

زروبېدن:(ز-رو-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زروبېدل-

زروبېدنګ:(ز-رو-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زروبېدل-

زروبېدنه:(ز-رو-بې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زروبېدل-

زروبېدونکے:(ز-رو-بې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زروبېدونکی- مؤنث زروبېدونکې- وګورئ زروبېدل-

زروبېدۀ:(ز-رو-بې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ زروبېدل-

زروف:(ز-روف)اسم- یو قسم دارو چې د سلائی په ذریعه په سترګو کښې اچولے شی-

زرول:(زره-ول)مصدر- (۱)هضمول- (۲)زغمل- برداشت کول-

زرولے:(زره-وۀ-لے)اسم مفعول- جمع زرولی- مؤنث زرولې- وګورئ زرول-

زرون:(زره-ون)حاصل مصدر- وګورئ زرول-

زرونکے:(زره-وون-کے)اسم فاعل- جمع زرونکی- مؤنث زرونکې- وګورئ زرول-

زرونګ:(زره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زرول-

زرونه:(زره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زرول-

زره:(زۀ-ره)اسم- واحد- مؤنث- زغره- بکتری- د جنګ د پاره پکارونکې هغه جامې چې لۀ اُسپنې جوړې وی-

زره پوښ:(زه-ره-پوښ)اسم- زره دار- د موټر په شان یوه جنګی وسله چې په غرنیزو برخو کښې ګرځولے شی- (افغانستان)-

زره دار:(زه-ره-دار)اسم- وګورئ زره پوښ- (افغانستان)-

زبر "(غ-بۀ-ره)"، زورکے "(شل)"، پېښ "(نو-کا-ره)"، زېر "(ک-تاب)"، جزم "(شکون)"، "ۀ"(ز-ړه)، "ۀ"(بو-بې-دۀ)

زرها:(زر-ها)اسم صفت- پهٔ زر کرته- ډېر زيات-

زرى:(زَ-رى)اسم- دَ ستونى يو قسم بيمارى چې پهٔ زکام کښې دَ بدپرهېزى لهٔ کبله پېدا کيږى- (افغانستان)-

زرى:(زَ-رى)صفت- (۱)دَ زرو- طلائى- زرين- (۲)هغه کپړه چې دَ تيلې کار پرې شوے وى-

زريار:(زر-يار)اسم صفت- اشناپرسته- طبيعتى- ژر اشنا کېدونکے- ژر بې تکلفه او ازادېدونکے- (افغانستان)-

زريخ:(زَ-ريخ)صفت- زرين- زرى- لهٔ زرو جوړ-

زريز:(زَ-ريز)اسم- خراسک- خروسک- خرسک- خرازک- يوه بيمارى چې ستونے پکښې اول پړسيږى او بيا بنديږى-

زريز:(زهٔ-ريز)اسم- زرګون- زرے- دَ زرو لوټ- (افغانستان)-

زريز:(زَ-ريز)اسم صفت- دَ زرو سره متعلق-

زرى زرکه:(زَ-رى-زر-که)اسم- دَ زرکو دَ کورنى يوه مرغى- (افغانستان)-

زرين:(زَ-رين)صفت- لهٔ زرو جوړ- وګورئ زرى-

زرېدل:(زَ-رې-دل)مصدر- هضمېدل- نصيب کېدل- (افغانستان)-

زرېدن:(زَ-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زرېدل-

زرېدنګ:(زَ-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زرېدل-

زرېدنه:(زَ-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زرېدل-

زرېدونکے:(زَ-رې-دُوَن-کے)اسم فاعل- جمع زرېدونکى- مؤنث زرېدونکې- وګورئ زرېدل-

زرېدهٔ:(زَ-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ زرېدل-

زرېوه:(زرې-وه)اسم- خړ رنګ او غټې غټې دانې لرونکے يو قسم بوټے چې دَ جُلابو دَ پاره پکارولے شى-

زرى:(زَ-رى)اسم- خورمه- شومه- روزى- يو وخت خوارهٔ-

زرے:(زَهٔ-رے)اسم صفت- (۱)خرے- قاصد- پېغام رسان- (۲)هوښيار- پوه- زيرک-

زرے:(زَ-رے)صفت- زرګون- دَ زرو-لوټ (نوټ)- (افغانستان)-

زړا:(زَ-ړا)اسم- دَ ژړا بل قرأت- وګورئ ژړا-

زړامبو:(زَ-رام-بو)اسم صفت- شلم- سواړ- هغه غوک چې وړد وړد کيږى- (۲)خړېدلے- خوړند- (افغانستان)-

زړامبوئ:(زړام-بوئ)اسم- زړان- زُرمبوى- لته بوئ- دَ کپړې دَ څهٔ ټوټې دَ سوزېدلو بوئ- (افغانستان)-

زړان:(زَ-ړان)اسم صفت- وګورئ زړامبو-

زړپ:(زَړَپ)اسم- نرګس- لنکس- يو قسم مشهور ګل- (افغانستان)-

زړپه غوږى:(زړ-په-غو-ږى)اسم- ستغ غوږى- وګورئ زړخن-

زړتوب:(زړ-توب)اسم- زړښت- زوړوالے- زړوالے- زړتيا-

زړتيا:(زړ-تيا)اسم- وګورئ زړتوب-

زړخن:(زړ-خن)اسم صفت- هغه غوږى چې خوند يې خراب شوے وى او يا يې خوند اړولے وى- (افغانستان)-

زړخن توب:(زړ-خن-توب)اسم- زړخنوالے- دَ زړخن جوړېدو حالت- وګورئ زړخن-

زړخنوالے:(زړ-خن-وا-لے)اسم- وګورئ زړخن توب-

زړخنول:(زړ-خهٔ-نه-وَل)مصدر متعدى- دَ غوړيو خوند خرابول- غوړى بدبويه او ستغول- غوړيو ته زوړ خوند ورکول- (افغانستان)-

زړخنون:(زړ-خهٔ-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ زړخنول-

زړخنونکے:(زړ-خهٔ-نه-وون-کے)اسم فاعل- جمع زړخنونکى- مؤنث زړخنونکې- وګورئ زړخنول-

زړخنونګ:(زړ-خهٔ-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زړخنول-

زړخنونه:(زړ-خهٔ-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زړخنول-

زړخنېدل:(زړ-خهٔ-نې-دل)مصدر لازم- غوړى ستغېدل- غوړى خرابېدل- بدبويه کېدل- (افغانستان)-

زړخنېدلے:(زړ-خهٔ-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زړخنېدلى- مؤنث زړخنېدلې- وګورئ زړخنېدل-

زړخنېدن:(زړ-خهٔ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زړخنېدل-

زړخنېدنګ:(زړ-خهٔ-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زړخنېدل-

زړخنېدنه:(زړ-خهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زړخنېدل-

زړخنېدونکے:(زړ-خهٔ-نې-دُوَن-کے)اسم فاعل- جمع زړخنېدونکى- مؤنث زړخنېدونکې- وګورئ زړخنېدل-

زړخنېدهٔ:(زړ-خهٔ-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ زړخنېدل-

زړخوږى:(زړ-خو-ږى)اسم- (۱)دَ زړهٔ زخمى والے- (۲)همدردى- خوا خوږى- زړه سوے-

زړخوږے:(زړ-خو-ږے)اسم صفت- (۱)غمژن- په زړهٔ خوږ- (۲)همدرد- زړهٔ خوږے-

زړداوه:(زړ-دا-وه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سپېلنى پهٔ شان يو بوټے چې زير ګلونه لرى- جمع زړداوې-

زړښت:(زَ-ړښت)اسم- وګورئ زړتوب-

زړغى:(زړ-غى)اسم- تذبذب- تردد- بې زړهٔ توب-

زړغے:(زَړ-غے)اسم- (۱)متردد- بې زړهٔ- زړغښے- (۲)اسم- لهٔ ناروغى نه وروستو اشتها- (افغانستان)-

زړک:(زَ-ړک)اسم- زرشک- کورے- زير ګلونه او سره ميوه لرونکې يوه وُنه- زرنګ- نباتاتى نوم بربېرس (BERBERIS)-

زړکښے:(زړ-کهٔ-ښے)اسم صفت- واحد- مذکر- زړه ماتے- زړه داړونکے- زړه بدونکے-

زړکوټے:(زړ-کو-ټے)اسم- واحد- مذکر- زړه ټوټه- زړه ټوکره- زوړ ټوکر-

جمع زړکوټی- (افغانستان)-

زړکوټے:(زړ-کو-ټے)اسم- پوړنے- پړونے- ټیکرے- زړوکے- (افغانستان)-

زړکوټے:(زړ-کو-ټے)اسم تصغیر- زړکے- دَ زړهٔ اسم تصغیر-

زړن:(زَ-ړن)اسم صفت- بهادر- زړور- دلاور- تکړه-

زړنی:(زړ-نی)اسم- شهد- شات- گبین- گبینهٔ-

زړنے:(زَ-ړه-نے)اسم صفت- پخوانے- پوخ- کلک- سخت- جمع زړنی-

زړو:(زړو)اسم صفت- دلاور- بهادر- زړور- (افغانستان)-

زړوالے:(زړ-وا-لے)اسم- زړروالے- زړښت- سپین ږیرتوب-

زړور:(زَړهٔ-وَر)اسم صفت- زړور- دلاور- زړن- شجاع- دَ زړهٔ خاوند-

زړورتوب:(زَړهٔ-وَر-توب)اسم- زړورتیا- زړوروالے-

زړورتیا:(زړهٔ-وَر-تیا)اسم- وګورئ زړورتوب-

زړوکے:(زَ-ړو-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)زړکوټے- ټیکرے- پړونے- پوړنے- لوپټه- زړوکے- (۲)جامه- کپړه-

زړول:(زَ-ړه-وَل)مصدر- (۱)پهٔ مزه مزه لهٔ مېنځه وړل- (۲)بوډا کول- عمر تېرول- (۳)ورستول- فرسوده کول-

زړومبه:(زَړوم-به)اسم- زاړمبوی- زړمبوی- لته بوئ- زړومبے- (افغانستان)-

زړومبے:(زړوم-بے)اسم- وګورئ زړومبه- (افغانستان)-

زړون:(زَ-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ زړول-

زړونګ:(زَ-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زړول-

زړونه:(زَ-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زړول-

زړونکے:(زَ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- جمع زړونکی- مؤنث زړونکې- وګورئ زړول-

زړه:(زَ-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ زوړ مؤنث-

زړه دره:(زَ-ړه-دَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ زوړوت-

زړه ګرګه:(زَ-ړه-ګر-ګه)اسم- (۱)ګرګه- کونده- دَ ونې زړه کونده- (۲)دَ ماشومانو یوه لوبه چې پهٔ لرګیو کیږی-

زړه لوغې:(زړه-لوه-غې)اسم صفت- زړې لوغزه- زاړه- زاړې مغه غوا چې دَ لنګېدو او پیو ورکولو موده ئې ډېره وتلې وی-

زړهٔ:(زړهٔ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ سینه کښې بنی اړخ ته دَ وینې صفا کولو یو اندام- (۲)جرأت- همت- (۳)خواهش- رغبت- مخه- مرضی- رضا- خوښه- (۴)منځ- مرکز-

زړهٔ بداوے:(زړهٔ-به-دا-وے)اسم- ناچاقی- ورانه- نالګی-

زړهٔ بدی:(زړهٔ-به-دی)اسم- زړهٔ بداوے- دښمنی- خروالے-

زړهٔ بدے:(زړهٔ-به-دے)اسم صفت- خوابدے- مرور-

زړهٔ برم:(زړهٔ-برَم)اسم- دَ زړهٔ زور- دَ زړهٔ قوت- (افغانستان)-

زړهٔ پورې:(زړهٔ-پو-رې)صفت- زړهٔ ته نېږ- زړهٔ ته نژدې-

زړهٔ ترکی:(زړهٔ-تره-کی)اسم- زړهٔ چاودی- غمژن والے-

زړهٔ ترکے:(زړهٔ-تره-کے)اسم صفت- زیات غمژن- زړهٔ چاودے-

زړهٔ تورن:(زړهٔ-تو-رن)اسم صفت- زړهٔ تورے- خواتورے-

زړهٔ تورے:(زړهٔ-تو-رے)اسم صفت- وګورئ زړهٔ تورن-

زړهٔ ټکے:(زړهٔ-ټ-کے)اسم- زړهٔ خواله- دَ زړهٔ راز-

زړهٔ خوړینے:(زړهٔ-خو-ړی-نے)اسم صفت- غمژن- پرېشانه- ډېر پهٔ عذاب-

زړهٔ خوړی:(زړهٔ-خو-ړی)اسم- خواخوری- همدردی- زړهٔ سواندی-

زړهٔ خوږے:(زړهٔ-خو-ږے)اسم صفت- خواخوږے- زړهٔ سواندے- غم شریک-

زړهٔ ډغے:(زړهٔ-ډهٔ-غے)اسم صفت- زړهٔ تورے- زړهٔ وهلے-

زړهٔ سواند:(زړهٔ-سواند)اسم صفت- وګورئ زړهٔ سواندے-

زړهٔ سواندی:(زړهٔ-سوان-دی)اسم- دلسوزی- زړهٔ خوږی- زړهٔ سوزونه- زړهٔ سوے-

زړهٔ سواندے:(زړهٔ-سوان-دے)اسم صفت- زړهٔ خوږے- دَ نرم زړهٔ خاوند- زړهٔ سواند- جمع زړهٔ سواندی-

زړهٔ سوے:(زړهٔ-سهٔ-وے)اسم صفت- کړېدلے- غمزده- ویرژلے- پهٔ غم سوے- جمع زړهٔ سوی-

زړهٔ سوے:(زړهٔ-سوے)اسم- مذکر- زړهٔ سواندی- رحم- شفقت-

زړهٔ شین:(زړهٔ-شین)اسم صفت- خلق تنګے- تنګ شوے- پهٔ عذاب شوے- زړهٔ شینے

زړهٔ شینی:(زړهٔ-شی-نی)اسم-مؤنث- خلق تنګی- عذاب-

زړهٔ شینے:(زړهٔ-شی-نے)اسم صفت- وګورئ زړهٔ شین-

زړهٔ غښتے:(زړهٔ-غښ-تے)اسم صفت- منلے- خوښ شوے- غوره شوے- جمع زړهٔ غښتی-

زړهٔ مېنتے:(زړهٔ-مېن-تے)اسم صفت- زړهٔ وړونکے- دلبر- معشوق-

زړهٔ ور:(زړهٔ-وَر)اسم صفت- زړور- تکړه- دلاور-

زړهٔ ورتوب:(زړهٔ-وَر-توب)اسم- زړورتیا- دَ زړور کېدو حالت-

زړهٔ ورتیا:(زړهٔ-وَر-تیا)اسم- زړورتوب- دلاوری- تکړه والے-

زړهٔ وړونے:(زړهٔ-وړو-نے)اسم صفت- دلبر- زړهٔ وړونکے-

زړېدل:(زَ-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)بوډا کېدل- عمر تېرېدل- عمر زیاتېدل- (۲)زړمېدلے کېدل- فرسوده کېدل- له استعماله وتلے کېدل- ورستېدل-

زړېدن:(زَ-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ زړېدل-

زړېدنګ:(زَ-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زړېدل-

زړېدنه:(زَ-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زړېدل-

زړېدونکے:(زَ-ړې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع زړېدونکی- مؤنث زړېدونکې- وګورئ زړېدل-

زړېدهٔ:(زَ-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زړېدل-

زړې لوغزه:(زَ-ړې-لوغ-زه)اسم- واحد- مؤنث- زاړې- وګورئ زړه لوغې-

زړی:(زَ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نوری- نمری- (۲)پهٔ لږ مقدار کښې- ډېر لږ-

زږے:(زهٔ-ږے)اسم- (۱)تخم- زوښے- زښے- (۲)مندته- مندکه- بمبته- (۳)نسل- خټه- نسب-

زږے:(ز-ږے)اسم- واحد- مذکر- زیړے- یرقان- یو رنځ چې سترګې ورسره تکې زیړې شی او په نور وجود هم زیړ رنګ راخور شی-

ززغولے:(زز-غو-لے)اسم- وازګه- وازده- شله- چڼیا- (افغانستان)-

زږ:(زږ)اسم صفت- زیړ- زاړهٔ- زوړه- شړل- شاړ شپاړ- د مهین او هوار ضد-

زږکے:(زږ-کے)اسم- واحد- مذکر- جیږکے- زیږکے- جوزکے- شیژکے- سیزکے- شژکے- جمع زږکی-

زږه:(ز-ږه)اسم صفت- وګورئ زږ-

زږه:(ز-ږه)اسم- واحد- مؤنث- د سپینو زرو یوه سکه-

زشت:(زشت)اسم صفت- زښت- بېسره- کرغړن- ناکاره- بد- پوچ- بدرنګ- خراب- (م- فارسی)-

زشتی:(زش-تی)اسم- خرابی- بدرنګی- (فارسی)-

زشکله:(زش-که-له)اسم- خښکله- هرګاه- هر وخت- مُدام- زښکله-

زښا:(زه-ښا)اسم- کُنځله- کُنځلې- د کُنځلو غوړ- د کُنځلو تېل- زښه-

زښت:(زښت)صفت- (۱)بېبر- زیات- (۲)لهٔ پامه بد- لهٔ نظره بد- زشت-

زښتېیل:(زښ-تې-یل)مصدر- (۱)خوروول- کړول- ربړول- (۲)خوابدے کول- خفه کول-

زښتېیلے:(زښ-تې-یهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زښتېیلی- مؤنث زښتېیلې- وګورئ زښتېیل-

زښتېین:(زښ-تې-ین)حاصل مصدر- وګورئ زښتېیل-

زښتېینګ:(زښ-تې-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ زښتېیل-

زښتېینه:(زښ-تې-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زښتېیل-

زښتېیونکے:(زښ-تې-یون-کے)اسم فاعل- جمع- زښتېیونکی- مؤنث زښتېیونکې- وګورئ زښتېیل-

زښکله:(زښ-کَ-له)اسم- وګورئ زشکله-

زښه:(زه-ښه)اسم- کُنځله- وګورئ زښا-

زعامت:(زَ-عا-مَت)اسم- (۱)مشرتابهٔ- مشرتوب- (۲)رهبری-

زعفران:(زَع-فَران)اسم- زاپران- کنکو- کنکو- یو قسم زیړ رنګ لرونکے بوټے- نباتاتی نوم زېفرنس (ZAFFRANC)- (م- فارسی)-

زعفرانی:(زَع-فَرا-نی)اسم- د زعفران سره متعلق- وګورئ زعفران-

زعیم:(زَ-عیم)اسم صفت- (۱)د قوم مشر- رهبر- سرکرده- پېشوا- (۲)کفیل- (۳)ضامن- (۴)رئیس- (افغانستان)-

زغ:(زغ)اسم- د لرګی هغه آله چې پټی کښې د کار کولو په وخت د دوؤ جوړه غوایانو په اوږو ایښوے شی- ژغ- جغ-

زغ:(زغ)اسم صوت- (۱)ښَښ- جز- د غوړیو یا بل یو داسې څیز د سرهٔ کولو اواز- (۲)د څهٔ څیز د داغولو اواز-

زغاره:(زغا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د غښتو پوږی- (۲)د ږدنو پوږی-
جمع زغارې-

زغاست:(زَغاست)اسم- خغاست- خغاښت- منډه- خغل-

زغاستل:(زَغاس-تل)مصدر- خغاښتل- منډه وهل- زغلېدل-

زغاسته:(زَغاس-ته)اسم- خغاښته- خغاسته- زغل- منډه-

زغاښت:(زَغاښت)اسم- زغل- منډه- خغاست-

زغاښتل:(زَغاښ-تل)مصدر- خغاستل- خغاښتل- زغل- منډه وهل- زغلېدل-

زُغال:(زُ-غال)اسم- سکارهٔ- زوغال-

زغانځه:(زَغان-ځه)اسم- واحد- مؤنث- وروه-

زغبنړے:(زَغ-بَن-ړے)اسم- وګورئ جغنړے- (افغانستان)-

زغپر:(زَغه-پَر)اسم- زغوپر- آفت- بلا- مصیبت- تکلیف-

زغر:(زَغر)اسم- یو قسم دانې چې تېل ترې وېستلے شی-

زغرد:(زَغرد)اسم صفت- (۱)زغړد- زړور- (۲)نیغ- تېز- تُند- (۳)چالاک-

زغردتوب:(زَغرد-توب)اسم- (۱)زغړتیا- زغړتوب- زغردوالے- زغړدوالے- زړورتیا- (۲)تُندی- تېزی- (۳)چالاکی- چُستی- (۴)ساتنه- بچ کونه-

زغردتیا:(زَغرد-تیا)اسم- وګورئ زغردتوب-

زغردوالے:(زَغرد-وا-لے)اسم- وګورئ زغردتوب-

زغردول:(زَغر-ده-ول)مصدر- زغړدول- زړور کول- (۲)تېزول- تندول- چابکول- (۳)خوندی کول- ساتل- بچ کول-

زغردون:(زَغر-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ زغردول-

زغردونکے:(زَغر-ده-وون-کے)اسم فاعل- جمع زغردونکی- مؤنث زغردونکې- وګورئ زغردول-

زغردونګ:(زَغر-ده-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زغردول-

زغردونه:(زَغر-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغردول-

زغردېدل:(زَغر-دې-دل)مصدر لازم- (۱)زغړدېدل- زړور کېدل- (۲)تېزېدل- تندېدل- چابکېدل- (۳)بچ کېدل- خوندی کېدل-

زغردېدن:(زَغر-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زغردېدل-

زغردېدنګ:(زَغر-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زغردېدل-

زغردېدنه:(زَغر-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغردېدل-

زغردېدونکے:(زَغر-دې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زغردېدونکی- مؤنث زغردېدونکې- وګورئ زغردېدل-

زغرلے:(زَغهٔ-رهٔ-لے)اسم- زغره اغستونکے- زغره لرونکے- اوبچے-

زغروبے:(زَغهٔ-رو-بے)اسم- تعویذ- (افغانستان)-

زغروبے:(زَغهٔ-رو-بے)اسم صفت- رُعبناک- جابر- د هیبت خاوند- هیبتناک-

زغرور:(زَغهٔ-ر-ور)اسم- وګورئ زغریالے-

زغروږے:(زَغهٔ-رو-ږے)اسم- پالېزوان- د پالېز ساتونکے- (افغانستان)-

زغره:(زَغهٔ-ره)اسم- زره- بکتری- د جنګ د پاره پکاروونکے فولادی قمیص- جمع زغرې-

زغره غټه:(زَغهٔ-ره-غَ-ټه)اسم- سخته غټه- ټینګه غټه- سخره غټه-

ی (څی-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

جمع زغرې غټې-

زغریال:(زغر-یال)اسم- وګورئ زغریالے-

زغریالے:(زَغر-یا-لے)اسم- زغره لرونکے- زغرور- زغریال- زغروال- جمع زغریالی-

زغری:(زغه-رې)اسم- څوکیداری- پېره داری- څوکۍ کونه- حفاظت کونه-

زغړ:(زَغړ)اسم صفت- بچ- محفوظ- ساتلے- خوندی- خلاص- ژغار-

زغړد:(زَغړد)اسم صفت- وګورئ زغړد-

زغړدل:(زَغړ-دل)مصدر- پهٔ حفاظت کښې ساتل- بچ کول- زغړل-

زغړدن:(زَغړ-دن)حاصل مصدر- وګورئ زغړدل-

زغړدنګ:(زَغړ-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زغړدل-

زغړدنه:(زَغړ-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغړدل-

زغړدونکے:(زَغړ-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع زغړدونکی- مؤنث زغړدونکې- وګورئ زغړدل-

زغړل:(زَ-غه-ړل)مصدر- بچ کول- ژغورل- ساتل- پهٔ پړه کول- خوندی کول-

زغړن:(زَ-غه-ړن)حاصل مصدر- وګورئ زغړل-

زغړنځه:(زَغ-ړن-ځه)اسم-:زوغړنځه- پوچه پسته- بې مغزه پسته- دَ پستې مغز نهٔ لرونکے تخم-

زغړنګ:(زَ-غه-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ زغړل-

زغړنه:(زَ-غه-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغړل-

زغړول:(زَغه-ړه-ول)مصدر- پهٔ زمکه رغړول- غټې شے پهٔ دیکه بوتلل- لوټ پهٔ لوټ اړول-

زغړولے:(زَغه-ړ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زغړولی- مؤنث زغړولې- وګورئ زغړول-

زغړون:(زَغه-ړ-ون)حاصل مصدر- وګورئ زغړول-

زغړونکے:(زَغه-ړ-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع زغړونکی- مؤنث زغړونکې- وګورئ زغړول-

زغړونګ:(زَغه-ړ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زغړول-

زغړونه:(زَغه-ړ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغړول-

زغړېدل:(زَغه-ړې-دل)مصدر- رغړېدل- غټې شے پهٔ دیکه بوتللے کېدل- لوټ پهٔ لوټ اړولے کېدل-

زغړېدلے:(زَغه-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زغړېدلی- مؤنث زغړېدلې- وګورئ زغړېدل-

زغړېدن:(زَغه-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زغړېدل-

زغړېدنګ:(زَغه-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زغړېدل-

زغړېدنه:(زَغه-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغړېدل-

زغړېدونکے:(زَغه-ړې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زغړېدونکی- مؤنث زغړېدونکې- وګورئ زغړېدل-

زغړېدهٔ:(زَغه-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زغړېدل-

زغړی:(زغه-ړی)اسم- حفاظت- پام لرنه-

زغستل:(زَغس-تل)مصدر- ځغستل- منډه کول- ترپل- ځغاستل-

زغستلے:(زَغس-تهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زغستلی- مؤنث زغستلې- وګورئ زغستل-

زغستن:(زَغس-تن)حاصل مصدر- وګورئ زغستل-

زغستنګ:(زَغس-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ زغستل-

زغستنه:(زَغس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغستل-

زغستونکے:(زَغس-تون-کے)اسم فاعل- جمع زغستونکی- مؤنث زغستونکې- وګورئ زغستل-

زغښتل:(زَغښ-تل)مصدر- زغړدل- نغښتل- کپړه یا کاغذ تهٔ کول- (۲)پهٔ حفاظت ساتل- پهٔ خیال ساتل-

زغښتلے:(زَغښ-تهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زغښتلی- مؤنث زغښتلې- وګورئ زغښتل-

زغښتن:(زَغښ-تن)حاصل مصدر- وګورئ زغښتل-

زغښتنګ:(زَغښ-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ زغښتل-

زغښتنه:(زَغښ-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغښتل-

زغښتونکے:(زَغښ-تون-کے)اسمِ فاعل- جمع زغښتونکی- مؤنث زغښتونکې- وګورئ زغښتل-

زغل:(زَغل)مصدر- ځغل- منډه- تښته- تېزتګ-

زغلا:(زَغه-لا)اسم- ځغلا- زغلېدنه- منډه وهنه- تښتېدنه-

زغلاند:(زَغه-لاند)اسم صفت- وږے- لېوال-

زغلول:(زَغه-له-ول)مصدر- ځغلول- منډه ورکول- پهٔ منډه کول- تښتول-

زغلولے:(زَغه-له-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع زغلولی- مؤنث زغلولې- وګورئ زغلول-

زغلون:(زَغه-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ زغلول-

زغلونکے:(زَغه-له-وون-کے)اسم فاعل- جمع زغلونکی- مؤنث زغلونکې- وګورئ زغلول-

زغلونګ:(زَغه-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زغلول-

زغلونه:(زَغه-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغلول-

زغلېدل:(زَغه-لې-دل)مصدر- ځغلېدل- منډه وهل- تښتېدل-

زغلېدلے:(زَغه-لې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زغلېدلی- مؤنث زغلېدلې- وګورئ زغلېدل-

زغلېدن:(زَغه-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زغلېدل-

زغلېدنګ:(زَغه-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زغلېدل-

زغلېدنه:(زَغه-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغلېدل-

زغلېدونکے:(زَغه-لې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زغلېدونکی- مؤنث زغلېدونکې- وګورئ زغلېدل-

زغلېدهٔ:(زَغه-لې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ زغلېدل-

زغم:(زَغم)اسم- (۱)صبر- تحمل- حوصله- (۲)جذبونه- هضمونه- (۳)ګالنه- زغما- برداشت-

زغما:(زَغه-ما)اسم- وګورئ زغم-

زغمل:(زَغه-مَل)مصدر- (۱)برداشت کول- ګالل- (۲)جذبول- جذب کول- هضمول-

زغملے:(زَغه-مهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زغملی- مؤنث زغملې- وګورئ زغمل-

زغمن:(زَغه-مَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زغمل-

زغمناک:(زَغم-ناک)اسم صفت- (۱)صبرناک- حوصله لرونکے- (۲)جذبناک-

زغمنګ:(زَغه-منګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زغمل-

زغمنه:(زَغه-مهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زغمل-

زغمونکے:(زَغهٔ-مُون-کے)اسمِ فاعل- جمع زغمونکی- مؤنث زغمونکې- وګورئ زغمل-

زغمونے:(زَغه-مُو-نے)اسمِ مفعول- جمع زغمونی- مؤنث زغمونې- وګورئ زغمل-

زغمه:(زَغه-مه)اسم- برداشت- تحمل- صبر- زغما-

زغمېدل:(زَغه-مې-دَل)مصدر- (۱)برداشت کېدل- ګاللے کېدل- (۲)جذبېدل- (۳)بارېدل- (۴)غمېدل- وړدېدل-

زغمېدلے:(زَغه-مې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع زغمېدلی- مؤنث زغمېدلې- وګورئ زغمېدل-

زغمېدن:(زَغه-مې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زغمېدل-

زغمېدنګ:(زَغه-مې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زغمېدل-

زغمېدنه:(زَغه-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ زغمېدل-

زغمېدونکے:(زَغه-مې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع زغمېدونکی- مؤنث زغمېدونکې- وګورئ زغمېدل-

زغمېدهٔ:(زَغه-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ زغمېدل-

زغن:(ز-غَن)اسمْ- ټپوس- موړک باز- (م- فارسی)-

زغنخی:(زَغَن-خی)اسم- د څارويو دَ بيماری پهٔ وخت کښې دَ دوائی پهٔ توګه پکاريدونکی يو قسم واښهٔ- (افغانستان)-

زغوپر:(زَغو-پَر)اسم- افت- بلا- ضرر- ټکه- زغپر- تکليف-

زغورل:(زَغو-رَل)مصدر- ژغورل- ساتل- بچ کول- خلاصول- دَ ژغورل بل قرأت-

زغورلے:(زَغو-رهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع زغورلی- مؤنث زغورلې- وګورئ زغورل-

زغورن:(زَغو-رَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زغورل-

زغورنګ:(زَغو-رَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زغورل-

زغورنه:(زغو-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زغورل-

زغورونکے:(زَغو-رُون-کے)اسم فاعل- جمع زغورونکی- مؤنث زغورونکې- وګورئ زغورل-

زغومې:(زَغو-مې)اسم- مؤنث- وزغنه- وژغنه- دَ بزو وړی-

زغومے:(زَغو-مے)اسم- واحد- مذکر- غړومبے- بغری- تندوره- زخم- کرداب- ګرداو- ګرخاو- چرخاو- کمنډ- وملندے- خارخوړی- ګرخنی- جمع زغومی-

زغوندے:(زَغون-دے)اسم- زغبندے- جغلنده- جغنډے- څغبنډے- جمع زغوندی- (افغانستان)-

زغونډے:(زَغون-ډے)اسم- وګورئ زغوندے-

زغه:(زغه)اسم- واحد- مؤنث- غز- دَ غرهٔ هغه ونه چې دَ لښتو او څانګو نه يې کجاوې، ټوکرۍ، سودې او شکورونه جوړولے شی-

زغهارے:(زَغه-ها-رے)اسم صوت- ژغژغ- دَ سخ سخ اواز-

زقوم:(زَ-قُوم)اسم- زُقم- تېرهٔ تېرهٔ ازغی لرونکے يو قسم تريخ بوټے-

زک:(زَک)اسم- (۱)دَ غوړيو ګوړے- دَ غوړيو مشک- (۲)شناز- شناخ-

زکات:(زَ-کات)اسم- زکواة- لهٔ پنځ بنا يوه بنا چې دَ صاحبِ نصاب دَ پاره عين فرض دے- جمع زکاتونه- (م- عربی)-

زکام:(زَ-کام)اسم- ربزش- يخنی- يوه بيماری چې پکښې لهٔ پوزې اُبهٔ بهيږی- (م- هندی)-

زکانه:(زَ-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- شين ټکے- دَ لوئ تبې لهٔ وجې پهٔ وجود راختونکے شين داغ-

زکبورے:(زک-بو-رے)اسم- واحد- مذکر- زرکوټے- زرکبوړے- زرکوړے- دَ زرکې بچے- جمع زکبوری-

زګارے:(زګا-رے)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)زګ- پوګ- بګورے- (۲)شلوم- دَ خوټکېدلې ګبين يا سوچه غوړيو دَ پاسه زګ يا بګورے-

زګال:(زَ-ګال)اسم- واحد- مذکر- پهٔ شملو کښې مېده شوې روټۍ- جمع زګالونه-

زګروا:(زګر-وا)اسم- واحد- مذکر- زګېروے- زوېرګے- نالښت- فرياد- زبېرګے- زګروے-

زګروے:(زګر-وے)اسم- واحد- مذکر- جمع زګروی- وګورئ زګروا-

زګور:(زَ-ګور)اسم- واحد- مذکر- ګوزار- غُزار-

زګول:(زه-ګ-وَل)مصدر- (۱)ځګول- پهٔ ځګ راوستل- (۲)شاربل- مښل- (۳)دَ مقرره حد نه دَ روټۍ يا دَ خميردان دَ اوړو زياتول-

زګولے:(زه-ګ-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع زګولی- مؤنث زګولې- وګورئ زګول-

زګون:(زه-ګ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ زګول-

زګونکے:(زه-ګ-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع زګونکی- مؤنث زګونکې- وګورئ زګول-

زګونګ:(زه-ګ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ زګول-

ئ" (خې-رل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پيا-لې)، ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

زکونه:(زه-گ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زګول-

زګېروې:(زګېر-وې)اسم- زګروا- فریاد- زوېرګے- زېبرګے- نالښت- جمع زګېروې-

زګېدل:(زه-ګې-دل)مصدر- (۱)پهٔ خګ راتلل- خګ کول- (۲)شاربل کېدل- مبتلے کېدل- (۳)دَ شوملو پهٔ لوښی کښې دَ ماتې شوې روټې تر ځنبو ځنبو راتلل-

زګېدلے:(زه-ګې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زګېدلی- مؤنث زګېدلې- وګورئ زګېدل-

زګېدن:(زه-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زګېدل-

زګېدنګ:(زه-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زګېدل-

زګېدنه:(زه-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زګېدل-

زګېدونکے:(زه-ګې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زګېدونکی- مؤنث زګېدونکې- وګورئ زګېدل-

زګېدهٔ:(زه-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زګېدل-

زګېرے:(زګې-رے)اسم- زېبرګے- دَ فریاد نری چغه یا غلے اواز- زګېروې-

زګېړل:(زګې-ړل)مصدر- ګېندې اچول- غټ غټ ټکونه ایستل- کچه کنډ تېرول-

زګېړلے:(زګې-ړهٔ-لے)اسم مفعول- جمع زګېړلی- مؤنث زګېړلې- وګورئ زګېړل-

زګېړن:(زګې-ړن)حاصل مصدر- وګورئ زګېړل-

زګېړنګ:(زګې-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ زګېړل-

زګېړنه:(زګې-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زګېړل-

زګېړونکے:(زګې-ړون-کے)اسم فاعل- جمع زګېړونکی- مؤنث زګېړونکې- وګورئ زګېړل-

زل:(زل)اسم- وړه پېسه- (افغانستان)-

زل:(زل)اسم- ځل- تل- دَ بار وړونکی حېوان دَ شا کپړه-

زلال:(ز-لال)اسم صفت- (۱)پاکې او رڼې اُبهٔ- (م- عربی)- (۲)زنګال- دَ واورې چینچے چې بدن ئې له واوړې پکے وی- (م- فارسی)-

زلال:(ز-لال)اسم صفت- (۱)لېونے- مجنون- دیوانه- (۲)ظالم-

زلالیه:(ز-لا-لی-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ قرینې او سترګې دَ عدسې تر مینځه موجودې سپینه مائع- جمع زلالیې- (افغانستان)-

زلپی:(زل-پی)اسم- زلفئ- زولفی- دَ اُسپنې هغه کړی چې پهٔ دروازه یا بل یو داسې څیز کښې دَ زنځیر اچولو دَ پاره ټک وهلے شی-

زلخوړتوب:(زل-خوړ-توب)اسم- زلخوړتیا- زیاته لوږه- ډېره لوږه- (افغانستان)-

زلخوړتیا:(زل-خوړ-تیا)اسم- وګورئ زلخوړتوب- (افغانستان)-

زلخوړی:(زل-خو-ړی)اسم- ډېره زیاته لوږه- وږے کېدنه- (افغانستان)-

زلخوړے:(زل-خو-ړے)اسم صفت- ډېر زیات وږے- ډېر وږے- (افغانستان)-

زلزل:(زل-زل)اسم صفت- خوځېدنه- (م- عربی)-

زلزله:(زل-زه-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ زمکې ناګهانه خوځېدنه- وېږدله- (م- عربی)-

زلفې:(زل-فې)اسم- جمع- مؤنث- زولپې- زولفې- کوڅې- کمڅې- څڼې-

زلفی:(زل-فی)اسم- وګورئ زلپی-

زلق:(زلق)اسم صفت- خلق- ځرک- خلا- پرک- برېښ-

زلقېدل:(زل-قې-دل)مصدر- خلقېدل- پرقېدل- چمکېدل- برېښېدل- خلق وهل- زلکېدل-

زلکېدل:(زل-کې-دل)مصدر- خلقېدل- خلېدل- پرقېدل-

زل:(ز-لل)اسم- ضرر- اذیت- تاوان- زیان- نقصان-

زلما:(زل-ما)اسم- زلمیتوب- ځوانی- ملکوانی-

زلمکے:(زل-مه-کے)اسم صفت- خلمکے- ځوانکے- دَ زلمی تصغیر-

زلموټے:(زل-مو-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- خلموټے- نوے زلمے- نوے ځوان- ځوانکے- ژټے-

زلمی توب:(زل-می-توب)اسم- زلما- ځوانی- دَ ځوانی حالت-

زلمینه:(زل-می-نه)اسم- زلما- زلمیتوب-

زلمے:(زل-مے)اسم صفت- خلمے- ځوان- رسېدلے- بلوغ ته رسېدلے-

زلند:(زه-لند)اسم صفت- واحد- مذکر- زبردست- زوروَر- جابر- ظالم-

زلندتوب:(ز-لند-توب)اسم- (۱)تېرے- زیاتے- (۲)تاړاک- زبردستی- جبر-

زلندو:(ز-لن-دو)اسم صفت- زلنده- جابر- ظالم-

زلنده:(ز-لن-ده)اسم صفت- وګورئ زلندو-

زلوچه:(ز-لو-چه)اسم- غالیچه- غالینچه- زلیچه- تالینچه- وړه تالینه- (افغانستان)-

زلوکه:(ز-لو-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کټه وټه- (۲)جوټه-

زله:(ز-له)اسم صفت- سترے ستومانه- (افغانستان)-

زلهال:(ز-هال)اسم صفت- واحد- مذکر- تُندخو-

زلین:(ز-لین)اسم- تالینه- غالی-

زلیچه:(ز-لی-چه)اسم- وګورئ زلوچه-

زلینه:(ز-لی-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- کاسیره- بداخلاقه ښځه-

زم:(زم)اسم- (۱)وار- ګوزار- (۲)زخم- ټپ- پرهر- پرار- پیاوور- زخمی او ټکېدلے ځائ-

زما:(ز-ما)اسم ضمیر- دَ واحد متکلم اضافی ضمیر-

زماد:(زماد)اسم- واحد- مذکر- تب- لېټی- پهه-

زمازمی:(ز-ما-ز-می)اسم- خپلو کښې مخالفت- خان خان ته راکښلے کېدنه- دَ یو څیز دَ ملکیت دَ پاره خان خان ته دعویٰ کونه-

زماغ:(ز-ماغ)اسم- واحد- مذکر- نوشادر-

زمام:(ز-مام)اسم- (۱)جلب- واګې- جلو- عنان- مهار- نته- (۲)سرشته-

سرښته-

زمامدار:(ز-مام-دار)اسم صفت- واکمن- واکدار- اختياردار- اداره کونکے- مشر- رئيس- سرکرده- سرغندوئ-

زمامداری:(ز-مام-دا-ری)اسم- (۱)واکنی- واکداری- اداره- اختيار- حکومت- واک- (۲)رياست- مشرتوب- مشری- (۳)سياستمداری-

زمان:(ز-مان)اسم- وخت- محال- شيبه- روزګار- پېر-

زمانه:(ز-ما-نه)اسم- (۱)زمان- پېرۍ- عصر- (۲)وخت- دور- جمع زمانې-

زمانه ساز:(ز-ما-نه-ساز)اسم صفت- واحد- مذکر- خوشامندګر- وختي- ابن الوقت- د ښې ورځې او وخت ملګرے- جمع زمانه سازان-

زمانه سازی:(ز-ما-نه-سا-زی)اسم- د زمانه ساز جوړېدو حالت- چلوټه-

زمانی:(ز-ما-نی)اسم صفت- د زمانې سره متعلق-

زمبر:(زم-بر)اسم- (۱)غرغول- ګور او ګڼ ځنګل- جنګی- درينګ- ړوله- ځنګه- ډينګړے- (۲)کپړ- منډاؤ- غاښور- راښکول- ګاؤزنبيل- (۳)وچت غږ- تېز اواز- (افغانستان)-

زمبک:(زم-بک)اسم- زمبق- نرمې او ښکلې پاڼې لرونکے يو قسم ګل- سوسن- (افغانستان)-

زمبل:(زم-بل)مصدر- وګورئ خمبل-

زمبور:(زم-بور)اسم- (۱)امبور- (۲)ډېره مچی- غمبسه- بمبره- ړنباره-

زمبورکه:(زم-بو-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- وړوکې توپه- جمع زمبورکې-

زمبولے:(زم-بو-لے)اسم- (۱)وړوکے غندے- وړوکے جوال- (۲)وړه ځانګه چې پاڼې لري- (افغانستان)-

زمبه:(زم-به)اسم- ګڼ- ګور- ببر- لۀ ونښتو ډک-

زمبيل:(زم-بيل)اسم- زامبيل- زنبر- جفے- د بوجۍ او لرګی نه جوړه هغه اله چې د دوؤ کسو پۀ ذريعه پکښې خاوره چلولے شي-

زمبېدل:(زم-بې-دل)مصدر- (۱)خمبېدل- بانۀ رپېدل- (۲)پۀ قراره قراره پۀ لاره تلل- (۳)پۀ نازړۀ کار کول-

زمته:(زم-ته)اسم صفت- خړ- خينګ- شرمنده-

زمخ:(زمخ)اسم- وګورئ زمچ- (افغانستان)-

زمچ:(زمچ)اسم- پېکړی- خوری- زمخ- (افغانستان)-

زمربچے:(زمر-به-چے)اسم- زمرکټے- د زمری بچے- مؤنث زمربچی-

زمربون:(زمر-بون)اسم- واحد- مذکر- هغه سړے چې زمری ساتی- جمع زمربانۀ- (افغانستان)-

زمرد:(ز-مر-رد/ز-مه-رد)اسم- يو قسم قيمتی شين کاڼے- زرغن غمے-

زمرک:(زمه-رک)اسم تصغير- د زمری اسم تصغير- وړوکے زمرے-

زمريالے:(زمر-يا-لے)اسم صفت- مېړنے- زړور- مړنے- تکړه- د زمری پۀ شان زړور- جمع زمريالی-

زمرين:(ز-م-رين)اسم- (۱)زامرين- ډېره يخنی- سخت سړۀ- شين زنګ- (۲)پرخه- شولنګ- شونم- شکنم- شبنم- (۳)د دوزخ ډېره يخه برخه-

زمرے:(زمه-رے)اسم- واحد- مذکر- مزرے- امزرے- منزرے- يو طاقتور او ځيرونکے ځناور- جمع زمری-

زمرے:(زمه-رے)اسم صفت- زړور- دلاور- بهادر- مړنے- مېړنے-

زمرے خلے:(زمه-رے-خ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د زمری پۀ شان خلۀ لرونکے- (۲- اسم)د چتونو يا حوضونو د پرنالو او ناوۆ خلې چې د زمری د خلې پۀ شان وی-

زمرېو:(زمر-يو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)زمرے- خان مړے- خه مړيو- خانخومړے- (۲)د سپکاوی او د ښېرو پۀ طور استعمالېدونکے تورے-

زمزم:(زم-زم)اسم- د بيت الله شريف سره خوا کښې چينه او د هغې اوبۀ چې د مرضونو شفا ګڼلے شي-

زم زمبولے:(زم-زم-بو-لے)اسم- (۱)ډېر پۀ ګرانه راتګ- (۲- اسم صفت)ګډ- کړم- شل-

زم زموړلے:(زم-زمو-ړۀ-لے)اسم- مړاوے- د زخم او تکليف د لاسه غلے سړے- زمول- (افغانستان)-

زمزمولے:(زم-زه-مو-لے)اسم صفت- ګډ- کړم- شل- زمزمبولے-

زمزمه:(زم-زه-مه)اسم- (۱)اتفاق- ملګرتيا- لښکر- جماعت- (۲)د اوښدا ږمه- (۳)ترانه- نغمه- جمع زمزمې-

زمستان:(ز-مس-تان)اسم- د ژمی موسم- ژمے-

زمکه:(زمۀ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه خاورينه کره چې مونږ پرې اوسېږو- (۲)دنيا- جهان- (۳)د غزل رديف، قافيه او وزن بحر-

زمکی غوبنه:(زمۀ-کی-غوه-ښه)اسم- خرېړے- پرېړه- خرمېړی- تيترے- کوڅے- مرخېړے- پوڅکی- تورسرتے- ډينګړے-

زمل:(ز-مل)مصدر- زمبل- سترګې وهل- ځېزمې رډول- خنبل-

زمن:(ز-من)اسم- زمنه- ورد- وظيفه- لسوانے- دعا-

زمنه:(زم-نه)اسم- (۱)زيمناکه- زومنه- زيمناک- زمکه- (۲)لاوڼ- نکولے- پخکړے- (۳)وګورئ زمن-

زمنے:(ز-مه-نے)صفت- وظيفه شناس- پۀ ډېر کوشش سره خپله وظيفه ترسره کونکے-

زموخ:(زموخ)اسم صفت- (۱)زموخت- قابض- تينګ- کلک- ستغ- (د خوند پۀ لحاظ)- (۲)تند- (۳)بخيل-

زموخت:(زموخت)اسم صفت- وګورئ زموخ-

زموختيا:(زموخ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زيروالے- خيږوالے- لواړتيا- (۲)تېز- تند- (۳)بخيلي-

زموخوالے:(ز-موخ-وا-لے)اسم- وګورئ زموختيا-

زموږ:(ز-موږ/زموږ)اسم ضمير- د "زمونږ" بل قرأت-

زموږه:(ز-مو-ږه)اسم ضمير- د "زمونږه" بل قرأت-

زمول:(زمول)اسم صفت- (۱)زموړلے- مړاوے- شېته- ناتوانه- ضعيف- جينګړ- کمزورے- جينګ- (۲)د مور پۀ نس کښې وچ شوے او مړ شوے

ې"(ښی-رل)، ي"(مې-ره-ول)، ی"(پيا-لي)، ے"(تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱،

بچې-
زمولتوب:(زَمول-توب)اسم- زمولتیا- مړاوې توب- جینګتوب- زمول والې- جینګړتوب-
زمولتیا:(زَمول-تیا)اسم- وګورئ زمولتوب-
زمولوالې:(زَمول-وا-لې)اسم- وګورئ زمولتوب-
زمولول:(زَمو-له-وَل)مصدر- (۱)مړاوې کول- کمزورې کول- (۲)خپل- زبل-
زمولون:(زَمو-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ زمولول-
زمولونکې:(زَمو-له-وون-کې)اسم فاعل- جمع زمولونکي- مؤنث زمولونکې- وګورئ زمولول-
زمولونګ:(زَمو-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زمولول-
زمولونه:(زَمو-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زمولول-
زمولېدل:(زَمو-لې-دَل)مصدر- (۱)مړاوې کېدل- شېته کېدل- جینګېدل- (۲)خپلې کېدل- خېبدل- زبېدل-
زمولېدن:(زَمو-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ زمولېدل-
زمولېدنګ:(زَمو-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ زمولېدل-
زمولېدنه:(زَمو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زمولېدل-
زمولېدونکې:(زَمو-لې-دُون-کې)اسم فاعل- جمع زمولېدونکي- مؤنث زمولېدونکې- وګورئ زمولېدل-
زمولېدهٔ:(زَمو-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ زمولېدل-
زمولې:(زَمو-لې)اسم صفت- (۱)بدقسمته- بدمرغه- (۲)ضعیف- خوار- ناتوانه- کمزورې-
زمونځې:(زَمون-ځې)اسم- دَ جولاګانو دَ کړې رمنځ-
زمونږ:(زَ-مونږ/زموږ)اسم ضمیر- زموږ- دَ جمع متکلم اضافی ضمیر-
زمونږه:(زَ-مونږ-ره)اسم ضمیر- زموږه- دَ جمع متکلم اضافی ضمیر-
زمه:(زهٔ-مه)اسم- واحد- مؤنث- پڅکړې- خورې- پڅکنې-
زمهریر:(زَم-هه-ریر)اسم- سخته یخنی- سخت ژمې- دَ دوزخ یخه برخه-
زمیدار:(زَ-مې-دار)اسم- (۱)زمیندار- کرونده ګر- بزګر- زمکه کرونکې- (۲)دَ زیاتې زمکې مالک-
زمیداره:(زَ-مې-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دهقانی- کرونده- دَ کر کروندې دنده- کاشتکاری- (۲)زمه واری-
زمیداری:(زَ-مې-دا-رې)اسم- زمینداری- بزګری- دهقانی- دَ زمکې دَ کر کیلې کار او پېشه-
زمیندار:(زَ-مین-دار)اسم- وګورئ زمیدار-
زمینداره:(زَ-مین-دا-ره)اسم- مؤنث- زمیداره- کرونده- کر کرونده- دهقانی-
زمینداری:(زَ-مین-دا-رې)اسم- وګورئ زمیداری-
زمینه:(زَ-مې-نه)اسم- (۱)زمکه- (۲)حالات- واقعات- ماحول-
زمینی:(زَ-مې-نې)اسم صفت- دَ زمکې سره متعلق- دَ زمکې سره مربوط-

زمبر:(زَمبر)اسم- زمبرنه- ساتنه- حفاظت کونه- (افغانستان)-
زمبرنه:(زَمبِ-رهٔ-نه)اسم- وګورئ زمبر-
زمبرې:(زَ-مبِ-رې)اسم صفت- محافظ- ساتونکې-
زمې:(زَ-مې)اسم- پشمکه- یو قسم وړوکې بوټې چې دَ مېلو سره څڅ پېدا کوی- صابون بوټې-
زمې:(زهٔ-مې)اسم- ژمې- دَ یخنی موسم-
زنا:(زَ-نا)اسم- بدفعلی- بدکاری- ناجائزه تعلقات- دَ غیر منکوحه ښځې سره نژدېکت-
زنابالجبر:(زَ-نا-بل-جه-بر)اسم- دَ پردی ښځې سره په زور زنا کونه-
زناخ:(زَ-ناخ)اسم- زنه- زنخدان- غبغب- جڅوره-
زنار:(زَ-نار)اسم- واحد- مذکر- کاپرمزې- هغه مزې چې عیسایانو یا یهودیانو ملا پورې تړلې وی یا هغه مزې چې یو قسم هندوانو پهٔ داسې شان پهٔ غاړه کښې اچولې وی چې یو سر ئې پهٔ مټ او بل دَ ترخ دَ لاندې وی-
زناکار:(زَ-نا-کار)اسم صفت- زانی- زنا کونکې- جمع زناکاران-
زناکاره:(زَ-نا-کا-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ زناکار مؤنث- بدلمنه- بدکاره- کاسیره- کنجره- کُشتې- مرچاخانه- ناجائزه تعلقات ساتونکې ښځه- جمع زناکارې-
زناکاری:(زَ-نا-کا-رې)اسم- دَ زناکار فعل-
زنانه:(زَ-نا-نه)اسم- مؤنث- (۱)ښځه- تورسرې- ماینه- اورته- ارتینه- (۲- صفت)ښځینه- دَ ښځو-
زن بچه:(زن-به-چه)اسم- بچ کچ- بال بچ-
زنبر:(زَم-بر)اسم- زمبیل- جغې-
زنبق:(زَم-بق)اسم- (۱)یو خوشبویه بوټې- (۲)دَ چنبې ګل- زُمبک-
زنبک:(زَم-بک)اسم- زُنبق-
زنبورخانه:(زَم-بور-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- ګګ- دَ سرو مچیو کور- جمع زنبورخانې-
زنجبیل:(زن-جه-بیل)اسم- زنجپیل- سونډ- شونډ- وړدې او نرې پاڼې لرونکې یو قسم دَ زېړ رنګ واښهٔ- زنجفیل- نباتاتی نوم (ZINGIBER)-
زنځ:(زنځ)اسم- وګورئ خورې-
زنځاوې:(زن-ځا-وې)اسم- ځګګ- ځاڅکې- قطره-
زنځول:(زَن-ځ-وَل)مصدر متعدی- ځځول- دَ کوزې یا بل داسې لوښی نه قطره قطره ځځول-
زنځولې:(زَن-ځ-وهٔ-لې)اسم مفعول- جمع زنځولی- مؤنث زنځولې- وګورئ زنځول-
زنځون:(زَن-ځ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ زنځول-
زنځونکې:(زَن-ځ-وون-کې)اسم فاعل- جمع زنځونکي- مؤنث زنځونکې- وګورئ زنځول-

زبر"(ځ-بهٔ-ره)، زورکې"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ة"(ز-ره)، ۀ"(یو-بې-دهٔ)

زنځونګ:(زن-ځ-ونګ)حاصل مصدر- وګوری زنځول-

زنځونه:(زن-ځ-وه-نه)حاصل مصدر- وګوری زنځول-

زنخه:(زن-خه)اسم- شوبله- سرسوبنده- دَ زمکې يوه خزنده-

زنځی:(زن-ځی)اسم- زړنه- زرنه- لوشه- زړنے- زرنځی- ټينګه، سخا او بدبويه شوې خټه- (افغانستان)-

زنځير:(زن-ځير)اسم- (۱)سلسله- (۲)دَ اَسپنې دَ کړو لړۍ- جمع زنځيرونه-

زنځيرول:(زن-ځی-ره-ول)مصدر- زنځير اچول- ور ته زنځير اچول- بندول- راګېرول-

زنځيرون:(زن-ځی-ره-ون)حاصل مصدر- وګوری زنځيرول-

زنځيرونکے:(زن-ځی-ره-وون-کے)اسم فاعل- جمع زنځيرونکی- مؤنث زنځيرونکې- وګوری زنځيرول-

زنځيرونګ:(زن-ځی-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګوری زنځيرول-

زنځيرونه:(زن-ځی-ره-وه-نه)حاصل مصدر- وګوری زنځيرول-

زنځيره:(زن-ځی-ره)اسم- واحد- مؤنث- زنځير- زنځيرۍ- کړۍ- الوول او کړۍ کړۍ-

زنځيرېدل:(زن-ځی-رې-دل)مصدر- زنځير کېدل- پورې کېدل- بندېدل- راګېرېدل-

زنځيرېدن:(زن-ځی-رې-دن)حاصل مصدر- وګوری زنځيرېدل-

زنځيرېدنګ:(زن-ځی-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری زنځيرېدل-

زنځيرېدنه:(زن-ځی-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګوری زنځيرېدل-

زنځيرېدونکے:(زن-ځی-رې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زنځيرېدونکی- مؤنث زنځيرېدونکې- وګوری زنځيرېدل-

زنځيرېده:(زن-ځی-رې-ده)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګوری زنځيرېدل-

زنځيرۍ:(زن-ځی-رۍ)اسم- يو تاريخی ليک چې دَ خوشحال بابا سره منسوب دے- دَ چاربېتې يو قسم-

زنځېدل:(زن-ځې-دل)مصدر- څڅېدل- لهٔ کوزې يا بل يو داسې قسم لوښی نه قطره قطره څڅېدل-

زنځېدلے:(زن-ځې-ده-لے)اسم مفعول- جمع زنځېدلی- مؤنث زنځېدلې- وګوری زنځېدل-

زنځېدن:(زن-ځې-دن)حاصل مصدر- وګوری زنځېدل-

زنځېدنګ:(زن-ځې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری زنځېدل-

زنځېدنه:(زن-ځې-ده-نه)حاصل مصدر- وګوری زنځېدل-

زنځېدونکے:(زن-ځې-دون-کے)اسم فاعل- جمع زنځېدونکی- مؤنث زنځېدونکې- وګوری زنځېدل-

زنځېده:(زن-ځې-ده)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګوری زنځېدل-

زنځی:(زن-ځی)اسم- نرې نرې او وړې وړې کړۍ-

زنڅخے:(زن-څ-خے)اسم- واحد- مذکر- زنخدان- دَ زنې مېنځنی او ژوره برخه-

زنخدان:(زه-نخ-دان)اسم- دَ زنې مېنځنی ژوره برخه- زنڅخے- (م- فارسی)-

زنخول:(زنخ-ول)اسم- دَ زړهٔ او اينې تر مېنځه نرۍ پرده-

زند:(زند)اسم- واحد- مذکر- دَ زردشت مذهبی کتاب- دَ اوستا تفسير-

زندان:(زن-دان)اسم- واحد- مذکر- (۱)جېل- بنديخانه- دَ تېديانو ځاۍ- (۲)دَ مېښې دَ لنګېدو پهٔ وخت راوتے لړمون- جمع زندانونه-

زندانی:(زن-دا-نی)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)محبوس- (۲)دَ زندان سره متعلق- (۲)هغه څاروے چې زندان ئې راوځی-

زندرک:(زن-دَ-رک)اسم- دَ لاندې ژامې او زنې هډوکے-

زندګی:(زن-دَ-ګی)اسم- مؤنث- ژوند- ژوندون-

زنده باد:(زن-ده-باد)کلمه- ژوندے وسه- دَ دُعا کلمه-

زنده سر:(زن-ده-سر)اسم- ژوندی-

زنديق:(زن-ديق)اسم صفت- مذکر- زينديق- مُلحد- ګمراه- لهٔ خُدايه منکر-

زندی:(زن-دی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- زيندی- دَ غرغرې پړے- دَ پانسی کولو کړۍ- تېزندی-

زنهه:(زنه-ده)اسم- واحد- مؤنث- يو بوټے- يوه جاړه-

زنزاوے:(زن-زا-وے)اسم- واحد- مذکر- څاڅکے- قطره- څکک-

زنزی:(زن-زی)اسم- بدبويه خټې- سخا خټې- زرنځی- زنځی-

زنغلے:(زن-غه-لے)اسم- زنګنے- زنګنی- لينکړے- هغه پيڅه چې زړۍ پرتوګ ته اچولے شی- (افغانستان)-

زن غوزی:(زن-غو-زی)اسم- جمع- مذکر- زن غوزی- چنغوزی- زنې غوزی- چلغوزی- چنغوزی-

زنکدن:(زن-که-دن)اسم- ځنکدن-

زنکی:(زن-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- زيره- يوه خوشبودار باريک تخم چې اکثر پهٔ ګرمه مصالحه کښې اچولے شی-

زنګ:(زنګ)اسم- مذکر- (۱)دَ اَسپنې خيرے- (۲)سخته يخنی- سخت ساړهٔ- (۳)وګوری زنګار-

زنګ:(زنګ)اسم- مذکر- ټلی- دَ پيتلو يا اَسپنې جوړه ټلی چې پهٔ سکولونو، کالجونو يا جېلونو کښې دَ ګنټې پوره کېدو نه پس وهلے شی- زنګوله- جرنګانے- ړنګ- ګينګړے- کرنګانے- ګونګړے- شرنګانے-

زنګار:(زنګ-کار)اسم- مذکر- زنګ- زنګ زنګار- اسپنځړے-

زنګال:(زنګ-ګال)اسم- (۱)ژغل- ګرند- يخ چې پهٔ اَبو کښې روان وی- (۲)دَ واورې چينجے چې فارسی کښې ورته زلال وائی-

زنګالی:(زنګ-ګا-لی)اسم صفت- مسو ته نژدې يو قسم رنګ-

زنګل:(زنګ-ګل)مصدر- زنګل- ټال خوړل- ځنګل- ځانګل-

زنګن:(زنګ-ګن)اسم صفت- (۱)زنګ لړونکے- (۲)خيرن-

زنګنی:(زنګ-ګ-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوری زنغلے-

زنګنې:(زنګ-ګه-نې)اسم- وګورئ زنګلې-

زنګوچ:(زنګ-ګوچ)اسم- مذکر- ځانګو- زانګو- زنګویه- زانګیبه- پینګو-

زنګوره:(زنګ-ګو-ره)اسم- واحد- مؤنث- د کاڼو او تیرو کچه کور-

زنګورې:(زنګ-ګو-رې)اسم- ړنډورې- وښکالې- ګونګورې- کونکې- د انګورو وړې- جمع زنګورې-

زنګول:(زنګ-ګ-ول)مصدر- (۱)ټالی ورکول- شوروَل- زانګو شوروَل- ځانګو شوروَل- (۲)خبره وړدول- خبره ځنډول-

زنګوله:(زنګ-ګو-له)اسم- ګینګرې- جرس- شرنګانې- زنګ-

زنګولی:(زنګ-ګو-لی)اسم- د زړهٔ درد- د زړهٔ خوږ- پریشانی- غم- خفګان- د زړهٔ نول-

زنګولې:(زنګ-ګ-وهٔ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع زنګولي- مؤنث زنګولې- وګورئ زنګول-

زنګون:(زنګ-ګ-ون)حاصل مصدر- وګورئ زنګول-

زنګون:(زنګ-ګون)اسم- ټکې- ټوټکې- د ورون او پنډۍ تر منځ برخه-

زنګونکې:(زنګ-ګ-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع زنګونکي- مؤنث زنګونکې- وګورئ زنګول-

زنګونګ:(زنګ-ګ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ زنګول-

زنګونه:(زنګ-ګ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زنګول-

زنګی:(زنګ-ګی)اسم صفت- واحد- مذکر- زنګ خوړلې- زنګ نیولې- زنګ وهلې-

زنګی:(زنګ-ګی)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حبشي- تورپوستې- تورپوټکې- (۲)تور غټ او قوی- جمع زنګیان-

زنګی:(زنګ-ګی)اسم صفت- واحد- مذکر- د پښتنو د ملی اتڼ ماهر-

زنګیه:(زنګ-یه)اسم- واحد- مؤنث- زنګویه- زنګو- ځانګو-

زنګېدل:(زنګ-ګې-دل)مصدر- (۱)ټال خوړل- ټال کښې تلل راتلل- (۲)خبره وردېدل- ټالېدل- ځنډېدل-

زنګېدلې:(زنګ-ګې-دهٔ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع زنګېدلي- مؤنث زنګېدلې- وګورئ زنګېدل-

زنګېدن:(زنګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ زنګېدل-

زنګېدنګ:(زنګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ زنګېدل-

زنګېدنه:(زنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زنګېدل-

زنګېدونکې:(زنګ-ګې-دون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع زنګېدونکي- مؤنث زنګېدونکې- وګورئ زنګېدل-

زنګېدهٔ:(زنګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ زنګېدل-

زنل:(ز-نل)مصدر- (۱)پیوندول- پهٔ ونه کښې قلم لګول- (۲)چخول- ټومبل- ننه ایستل- ځایول-

زنلې:(ز-نهٔ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع زنلي- مؤنث زنلې- وګورئ زنل-

زننه:(ز-نهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ زنل-

زنونکې:(ز-نون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع زنونکي- مؤنث زنونکې- وګورئ زنل-

زنه:(زهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- د لاندې شونډې او مرۍ تر مېنځه حصه- ذقن- جمع زنې-

زنه:(ز-نه)اسم- واحد- مؤنث- زنزه- زمزه- جمع زنې-

زنه:(ز-نه)اسم- مؤنث- هغه رنګ چې د اش ورکولو څخه وروستو ځرمنې ته ورکولې کیږي-

زنه چوخې:(زهٔ-نه-چو-خې)اسم- چاه غبغب- د زنې قتې- زنخدان- زنچخې-

زنهار:(زن-هار)اسم- خبردار- هرګز- هېڅکله- هوو- بېخي- امان- پناه- د تاکید د پاره هم راځی-

زنغوزې:(زن-غو-زې)اسم- واحد- مذکر- چلغوزې- زنغوزې- جلغوزې- جنغوزې- جنغوزې- زنغوټزې- جمع زنغوزي-

زنکی:(زن-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- جلکی- ژلکی- پیڅله- جبلی-

زنکی:(زن-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- زیره- (افغانستان)-

زنکی نار:(زن-کی-نار)اسم- د زیرې پهٔ شان پاڼې لرونکې یو بوټې چې بیخ ې د کچالو غوندې وی او ازم خوړلې شی- ګردی کنډوله- (افغانستان)-

زنکې:(زن-کې)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کړاچې- خوانکې- خلمې- ژنکې- جمع زنکي- (۲)زیره- جیره- خیره-

زنیه لار:(زن-یه-لار)اسم- یو رسم چې د وادهٔ پهٔ شپه د ناوې د بوتلو پهٔ وخت د جینی د کلی غریبانان د وادهٔ د خلمی نه راتاویږی او د وادهٔ خلمې ورته پیسې ورکوی-

زنې:(زهٔ-نې)اسم- واحد- مذکر- زړې- زونه- زونې- د ختکی هندوانې وغیره تخم- جمع زنې-

زنې:(زهٔ-نې)اسم صفت- واحد- مذکر- خلمې- ژنکې- ځوان- زنکې- جمع زنې-

زنې:(زهٔ-نې)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)زخمی- ناجوړه- ناروغه- (۲)غریب- خوار- جمع زنې- (افغانستان)-

زو:(زو)اسم- زیږنه- زیږدنه- زوکړه-

زو:(زو)اسم صوت- (۱)زویه! خو! (۲)د زوی مخفف-

زو:(زو)اسم- د کچه خښتې ټوټه-

زو:(زو)اسم- ژوبڼ- باغ و حش- د حیواناتو نندارتون- (افغانستان)-

زوا:(زوا)اسم- زاری- عذر- سوال- سینتی-

زواک:(زواک)اسم- مذکر- ژواک- ژوند- ژوندون-

زواګر:(زوا-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- زاری کونکې- زوا کونکې-

زوال:(ز-وال)اسم- مذکر- (۱)کمې- تنزل- د ترقی او د عروج کمېدنه- (۲)الړې کېدنه- (۳)ورکېدنه- (۴)لهٔ برمه پرېوتنه- (۵)لوېدنه- غرځېدنه-

زبر (غ-بهٔ-ره)، زورکې (شل)، زېر (ک-تاب)، پېښ (نو-کا-ره)، جزم (شکون)، ه (ز-ړه)، هٔ (پو-ښې-دهٔ)

لرونکے انسان-

سپېرمه:(سپېږ-مه)اسم- واحد- مؤنث- سپرمه- دَ پوزې سورے- جمع سپېرمې-

سپېسته:(سپېس-ته)اسم- واحد- مؤنث- تروه خمبيره- تروشه خمبيره-

سپېسکے:(سپېس-کے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم بوټے چې سپرلی کښې کيږی-

سپېښته:(سپېښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- هغه نرۍ پرده چې دَ زړهٔ نه تاؤ وی- شپېته- دَ نس پرده-

سپېغود:(سپې-غود)اسم- وګورئ سپيغود- يو قسم بوټے-

سپېغول:(سپې-غول)اسم- وګورئ سپيغول-

سپېکانه:(سپې-کا-نه)اسم- سپيتانه- بې غېرتي- رذالت- سپيتوب-

سپېلنے:(سپې-ل-نے)اسم- واحد- مذکر- يو بوټے چې دَ نظر ماتولو توږکه کښلے شی- سپانده- نباتاتی نوم پګانم هرملا (PEGANUM HARMALA)-

سپېمه:(سپې-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه سپې چې نر سپے غواړی- (۲)بد فعله او بد کرداره ښځه-

سپېمه توب:(سپې-مه-توب)اسم- سپېمه والے- دَ سپې هغه حالت چې نر سپی ته ئې شوق کيږی-

سپېمه والے:(سپې-مه-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سپېمه توب-

سپی:(سپی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ سپے-

سپے:(سپے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم غوښه خوړونکے ځناور چې خلق ئې پهٔ کورونو کښې دَ څوکی دَ پاره هم ساتی- مؤنث سپی-

سپے مخے:(سپے-مه-خے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بې لحاظه- بې پاسه- (۲)بې حيا- بې شرمه-

سپے مرګو:(سپے-مر-ګو)اسم- واحد- مذکر- دَ سپو يو قسم ناروغی-

ست:(ست)اسم- واحد- مذکر- (۱)بلنه- دعوت- (۲)دَ سپيغولو نه رتے جوهر چې دَ خېټې دَ نرمولو دوا کښلے شی-

ستا:(ستا)ضمير مخاطب- دَ تا-

ستار:(س-تار)اسم- واحد- مذکر- سيتار- دَ موسيقی يوه آله- (م- فارسی)-

ستار:(س-تار)اسم صفت- پرده پوښ- پرده پوش- پوښونے- پوښونکے- دَ الله تعالی يو صفتی نوم- (م- عربی)-

ستاره:(س-تا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هيبت- ويره- سام- دروندوالے- دبدبه- رُعب- سهم- (۲)قسمت- تقدير- بخت- طالع- تندے-

ستاړه:(ستا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- صلح- سوله- پخلا کېدنه-

ستاسو:(ستا-سو)ضمير مخاطب- جمع- دَ تاسو- دِ تاسو- ستاسی-

ستاسی:(ستا-سی)ضمير مخاطب- جمع- وګورئ ستاسو-

ستالب:(ستا-لب)اسم- دَ ملا دَ درد په دارو کښې پکارونکے يو قسم بوټے- (افغانستان)-

ستانه:(ستا-نه)اسم- واحد- مؤنث- آستانه- کور- دَ چا پير بزرګ ډېره-

ستانهٔ:(ستا-نهٔ)صفت- جمع- پاتې شوی- ځنډېدلی- معطل شوی-

ستاوندی:(ستا-ون-دی)اسم- جمع- مؤنث- عبث خبرې- فضول خبرې- اپلتې-

ستايل:(ستا-يل)مصدر- تعريف کول- مدح ونيل- صفت کول- پهٔ ښهٔ سترګه کتل-

ستايلے:(ستا-يهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ستايلی- مؤنث ستايلې- وګورئ ستايل-

ستاين:(ستا-ين)حاصل مصدر- وګورئ ستايل-

ستاينګ:(ستا-ينګ)حاصل مصدر- وګورئ ستايل-

ستاينه:(ستا-يهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستايل-

ستايوال:(ستا-يُ-وال)اسم صفت- صفت کونکے- ستايونے- ستايونکے- صفتی- مداح- تعريف کونکے- مدح ويونکے-

ستايونکے:(ستا-يون-کے)اسم فاعل- جمع ستايونکی- مؤنث ستايونکې- وګورئ ستايل-

ستر:(ستر)اسم صفت- (۱)غټ- لوئ- (۲)مشر- (۳)فراخ- پلن- ويږ- (۴)تنکی- کولک- ټيک- ځيے- (افغانستان)-

ستر:(سه-تر)اسم- واحد- مذکر- حجاب- پړده- پرده-

ستراؤ:(ست-راؤ)اسم- واحد- مذکر- هغه ميوه چې لهٔ ونو نه پهٔ طوفان کښې پرېوتې وی-

سترتوب:(ستر-توب)اسم- واحد- مذکر- مشروالے- غټ والے- فراخ والے- پلن والے-

سترغلی:(ستر-غ-لی)اسم- جمع- مذکر- دَ سترګو کاتي- دَ سترګو حلقې- دَ سترګو چاپېرچل ځائ-

سترګبېجن:(ستر-ګ-بې-جن)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه ښکلے څيز چې دَ خلقو سترګی ځان ته راکاږی-

سترګتورن:(ستر-ګ-تو-رن)اسم صفت- (۱)هغه سړے چې څهٔ څيز ته ډېر لېواله وی- (۲)سرګردان- هغه سړے چې سترګې پرې تورېږی-

سترګ خوږے:(ستر-ګ-خو-ږے)اسم صفت- هغه څوک چې سترګی ئې خوږ وی-

سترګک:(ستر-ګک)اسم- واحد- مذکر- دَ سترګو اشاره- دَ سترګو خبره- سترګه وهنه-

سترګن کوکو:(ستر-ګن-کو-کو)اسم- دَ نرګس ګل- نرګس- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ نرګس- (افغانستان)-

سترګنلے:(سترګ-نهٔ-لے)اسم- دَ سترګو دَ کاتو ځائ- دَ سترګو کاسه-

سترګ وږے:(ستر-ګ-وُ-ږے)اسم صفت- حريص- وږ سترګے- اروا وږے-

سترګه:(ستر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چشم- هغه اندام چې دَ کتلو قوت لری- (۲)دَ بوټی سترګه- (۳)دَ سبا سترګه- (۴)دَ نمر سترګه- جمع سترګې-

سترګه وال:(ستر-ګه-وال)اسم صفت- سترګه ور- سترګيز- (۱)نظرباز-

ستركور - بينا- ليدونكے- (٢)عاقل- دَ عقل خاوند- پوه-
ستركه ور :(سْتَر-كه-وَر)اسم صفت- وګورئ ستركه وال-
ستركيز :(سْتَر-كيز)اسم صفت- وګورئ ستركه وال-
ستركى :(سْتَر-كَى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (١)چشمې- عېنكې- (٢)ستركې رااېستنه-
سترتوب:(سْتَر-تُوب)اسم- سترتيا- ستروالے- غټ والے- لوئ والے- مشر والے-
سترتيا:(سْتَر-تِيا)اسم- وګورئ سترتوب-
سترمنه:(س-تَر-مَهْ-نه)اسم صفت- ستر كونكې- پرده كونكې- ځان نهٔ ځرګندونكې-
سترواله :(سْتَر-وَا-لے)اسم- وګورئ سترتوب-
سترول:(سْتَهْ-ر-وَل)مصدر متعدى- (١)لويول- غټول- (٢)كامیابول- وده وركول-
سترون:(سْتَهْ-ر-وُن)حاصل مصدر- وګورئ سترول-
سترونكے:(سْتَهْ-ر-وون-كے)اسم فاعل- جمع سترونكى- مؤنث سترونكې- وګورئ سترول-
سترونګ:(سْتَهْ-ر-وُنګ)حاصل مصدر- وګورئ سترول-
سترونه:(سْتَهْ-ر-وَهْ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سترول-
ستروے:(سْتَر-وے)اسم- واحد- مذكر- لوئ- لوئ والے- عظمت- سترتوب-
ستره:(سَت-ره)اسم- واحد- مؤنث- (١)پړونے- څادر- ټيكرے- (٢- صفت)سترداره- پرده داره-
ستره:(ست-ره)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ كشتۍ كښې دَ ځاروو دَ سورېدلو ځاۍ-
ستره:(سُت-ره)اسم- واحد- مذكر- سوتره- صفا- پاك- بې عيبه- سپېڅلے- سپېڅلے-
سترېدل:(سْتَهْ-رې-دَل)مصدر لازم- (١)لوئ كېدل- غټېدل- (٢)وده كول- (٢)ترقي كول- كامیابېدل-
سترېدن:(سْتَهْ-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سترېدل-
سترېدنګ:(سْتَهْ-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سترېدل-
سترېدنه:(سْتَهْ-رې-دَهْ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سترېدل-
سترېدونكے:(سْتَهْ-رې-دُون-كے)اسم فاعل- جمع سترېدونكى- مؤنث سترېدونكې- وګورئ سترېدل-
سترے:(سُت-رے)اسم- واحد- مذكر- كېډى- دلى- انبار- دَ فصل پرېكړے شوے ټوپ-
سترى وترى:(ست-رى-وت-رى)اسم مركب- (١)پرېشان- ګډوډ- تار پهٔ تار- (٢)هغه كورنۍ چې هر فرد ئې دَ بيمارۍ لهٔ كبله پهٔ كټ پروت وى-
سترړى مشى:(سْتَهْ-ړى-مَهْ-شى)اسم- مركلے- پهٔ خېر راغلے-
ستړے:(سْتَهْ-ړے)اسم صفت- (١)ستومانه- (٢)پرېشانه- ذرې ذرې-
ستړے توب:(سْتَهْ-ړے-توب)اسم- واحد- مذكر- دَ ستومانۍ حالت- (٢)دَ پرېشانۍ حالت-
ستړے والے:(سْتَهْ-ړے-وا-لے)اسم- واحد- مذكر- وګورئ ستړے توب-
ستغ:(سْتَغ)اسم صفت- (١)زيږ- تريخ- ناهموار- سخت- كلك- (٢- اسم)يو قسم غوټه چې پهٔ بدن كښې دَ ننكى پهٔ شكل كښې پېدا كيږى- (٢)دَ غرهٔ سر ته نېغه ختلې لاره-
ستغه:(سْتَهْ-غه)اسم- واحد- مؤنث- بده وينا- سپوره وينا- سخته خبره-
ستل:(س-تَل)مصدر متعدى- شوارول- ازارول-
ستم:(س-تَم)اسم- واحد- مذكر- ظلم- زياتے- تېرے-
ستمبول:(سْتَم-بول)اسم- واحد- مذكر- (١)خوشبوئي- (٢)يو قسم نسوارى رنګ لرونكے خوشبويه غټ ختكے-
ستمګر :(س-تَم-ګر)اسم صفت- ظلم كونكے- ظالم- زياتے كونكے-
ستم وهل:(س-تَم-وَ-هَل)مصدر متعدى- كوشش كول- سعى كول- زور كول-
ستمن:(سُت-مَن)اسم صفت- مېلمه دوست- پهٔ مېلمنو خرڅ خوراك كونكے- مېلمه پالونكے-
ستمې:(سْتَه-مې)اسم صوت- واحد- مؤنث- پهٔ زوره زوره دَ ساه اخستلو آواز- دَ زړهٔ درزار-
ستن:(سْتَن)اسم- واحد- مؤنث- يو نرے سلانى چې يو سر ئې تېرهٔ وى او بل سر كښې ئې نرے سورے وى او دَ ګنډلو دَ پاره پكارولے شى-
ستناؤ:(سْتَه-ناؤ)اسم- واحد- مذكر- تمبونكے- ټالونكے- خنډونكے: بند- خنډ- مانع-
ستناوه:(سْتَه-نا-وَه)اسم- مؤنث- دَ مشرتوب حق لرنه- (افغانستان)-
ستن بوټے:(سْتَن-بو-ټے)اسم- واحد- مذكر- يو قسم بوټے- ستن ګيا-
ستنخے:(سْتُن-خے)اسم- واحد- مذكر- زندان- بنديخانه- جېل-
ستن ستنكے:(سْتَن-سْتَن-كے)اسم- صدبرګ ګل- ببركوكو- ستنكے- سل پاڼے-
ستنول:(سْتَه-نه-وَل)مصدر متعدى- ګرځول- تمبول- اړالول- بندول- ايسارول- معطلول- منع كول- ستونول-
ستنون:(سْتَه-نه-وُن)حاصل مصدر- وګورئ ستنول-
ستنونكے:(سْتَه-نه-وون-كے)اسم فاعل- جمع ستنونكى- مؤنث ستنونكې- وګورئ ستنول-
ستنونګ:(سْتَه-نه-وُنګ)حاصل مصدر- وګورئ ستنول-
ستنونه:(سْتَه-نه-وَهْ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستنول-
ستنه:(سْتَه-نه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ شا تلنه- واپس تلنه- واپس كېدنه-
ستنه:(سْتَهْ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ستن-
ستنېدل:(سْتَه-نې-دَل)مصدر لازم- پهٔ شا تلل- واپس تلل- بېرته تلل- واپس كېدل-
ستنېدن:(سْتَه-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ستنېدل-
ستنېدنګ:(سْتَه-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ستنېدل-

ستنېدنه:(ستـه-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستنېدل-

ستـنېدونکے:(ستـه-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع ستـنېدونکی- مؤنث ستـنېدونکې- وګورئ ستـنېدل-

ستنېدهٔ:(ستـه-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ستـنېدل-

ستو:(س-تو)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګورئ ستوان-

ستوان:(ست-وان)اسم- جمع- مذکر- وچ توتان یا نیښي چې مېده کړے شي، خواږهٔ پکښې ولړلے شي او بیا خوړے شي-

ستوغ:(ستوغ)اسم صفت- ستغ- ځیګ- سخت- کلک- ستوغ- مغه ځیزونه چې خوند ئې پېر تریخ وي-

ستور:(ستور)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کونترې هومره داني خوړونکې یوه توررنګې مرغۍ- (۲)غټ ځاروے-

ستورپکے:(ستور-په-کې)اسم- مؤنث- پهٔ دسترخوان کېدونکے یو قسم نقش-

ستورې:(ستو-رې)اسم- جمع- مذکر- مغه اجرام یا کرې چې پهٔ اسمان کښې دَ شپې پهٔ وخت پرقېدونکي ښکاري- واحد ستورے-

ستورې:(ستو-رې)اسم- مؤنث- مرخېږے- ګوټې- پوټکي- خرېږے- ستورے-

ستورے:(ستو-رے)اسم- مذکر- (۱)وګورئ ستورې- (۲)بخت- طالع-

ستوغ:(ستوغ)اسم صفت- وګورئ ستغ-

ستوغه:(ستو-غه)اسم صفت- ستغه- دَ ستوغ مؤنث-

ستوکل:(ستو-کل)اسم- واحد- مذکر- بدنیته، شریر او ناراسته سړے-

ستوکه:(ستو-که)اسم- واحد- مؤنث- استوکه- استوګنه- وسېدنه- سکونت-

ستـول:(س-ت-ول)مصدر متعدي- (۱)کمول- ټیټول- سپکول- غلے کول- کښېنول- (۲)دَ خوراک ځښاک دعوت ورکول-

ستومان:(ستو-مان)اسم صفت- وګورئ ستومانه-

ستـومـانول:(ستـو-مـا-ن-ول)مـصدر مـتـعدي- (۱)ستـړے کـول- زېـل- (۲)پرېشانول- پرېشانه کول-

ستومانون:(ستو-ما-ن-ون)حاصل مصدر- وګورئ ستومانول-

ستـومانونکے:(ستـو-ما-ن-ون-کے)اسم فاعل- جمع ستومانونکی- مؤنث ستومانونکې- وګورئ ستومانول-

ستومانونګ:(ستو-ما-ن-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ستومانول-

ستومانونه:(ستو-ما-ن-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستومانول-

ستـومـانه:(ستـو-مـا-نـه)اسم صفت- ستـومن- (۱)ستـړے- خستـه- زېلـے- (۲)پرېشانه-

ستوماني:(ستو-ما-نې)اسم- واحد- مؤنث- دَ ستړې والی حالت- ستړے والے- (۲)دَ پرېشانۍ حالت-

ستومانېدل:(ستو-ما-نې-دل)مصدر لازم- (۱)ستړے کېدل- (۲)پرېشانه کېدل-

ستومانېدن:(ستو-ما-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ستومانېدل-

ستومانېدنګ:(ستو-ما-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ستومانېدل-

ستومانېدنه:(ستو-ما-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستومانېدل-

ستومانېدونکے:(ستو-ما-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع ستومانېدونکی- مؤنث ستومانېدونکې- وګورئ ستومانېدل-

ستومانېدهٔ:(ستو-ما-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ستومانېدل-

ستومن:(ستو-من)اسم صفت- وګورئ ستومانه-

ستومے:(ستو-مے)اسم- واحد- مذکر- دَ ستنې سترګه- دَ ستنې سَم-

ستون:(ستون)اسم صفت- واحد- مذکر- بیرته ګرځېدلے- واپس شوے- معطل- پستنه- واپس-

ستون:(س-تون)اسم- واحد- مذکر- دَ کوټې یا دالان ستن- پایه- اډانه-

ستون:(س-ت-ون)حاصل مصدر- وګورئ ستول-

ستونچه:(ستون-چه)اسم- واحد- مؤنث- مغه لستونړے چې زنانه ئې دَ ږوږۍ پخولو پهٔ وخت دَ لاس نه چاپېره کوي-

ستونځه:(ستون-ځه)اسم- واحد- مؤنث- کړاو- تکلیف- زحمت- ربړ-

ستونکے:(س-تون-کے)اسم فاعل- هوارونکے- اوارونکے-

ستونکے:(س-ت-وون-کے)اسم فاعل- جمع ستونکی- مؤنث ستونکې- وګورئ ستول-

ستونګ:(س-ت-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ستول-

ستونکي:(ستو-نه-کې)اسم صفت- ستانکي- چې دَ ستانې سره تعلق لري- ستانه دار-

ستونول:(ستو-ن-ول)مصدر- وګورئ ستـنول-

ستونونکے:(ستو-ن-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ستـنول-

ستونه:(س-ت-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستول-

ستونی ستغ:(ستو-نی-ستغ)اسم صفت- شا پهٔ زمکه- دَ پړمخ ضد-

ستونېدل:(ستو-نې-دل)مصدر لازم- ستـنېدل- واپس کېدل-

ستونېدن:(ستو-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ستونېدل-

ستونېدنګ:(ستو-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ستونېدل-

ستونېدنه:(ستو-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستونېدل-

ستونېدونکے:(ستو-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع ستونېدونکی- مؤنث ستونېدونکې- وګورئ ستونېدل-

ستونېدهٔ:(ستو-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ستونېدل-

ستونے:(ستو-نے)اسم- واحد- مذکر- حلق- مری- غړی-

ستوه:(ستهٔ-وه)اسم- واحد- مؤنث- مغه چاړهٔ چې دواړهٔ مخه ئې تېرهٔ وي- پېش کوزه- پېش قوزه- پـېش قوزه- (م- فارسي پېش قبض)-

ستوهٔ:(ستـه-وهٔ)اسم- واحد- مؤنث- ستـومانـه- خفه- دلګیر- بې وسه- مجبور- (م- فارسي)-

ستوهه:(ستو-هه)اسم- واحد- مؤنث- مجبوري- ستړے والے-

ستـوهـېدل:(ستـو-هې-دل)مـصدر لازم- (۱)خـفه کـېـدل- نـاراضه کـېـدل- (۲)بې وسه کېدل- ستومانه کېدل- ستړے کېدل-

ستوهېدن:(ستو-هې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ستوهېدل-

ستوهېدنګ:(ستو-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ستوهېدل-

ستوهېدنه:(ستو-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ستوهېدل-

ستوهېدونکے:(ستو-مې-دون-کے)اسم فاعل- جمع ستوهېدونکی- مؤنث ستوهېدونکې- وګورئ ستوهېدل-

ستوهېدهٔ:(ستو-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ستوهېدل-

ستوی:(ستهٔ-وی)اسم- واحد- مؤنث- د سترګو یو قسم بیماری-

ستوے:(ستهٔ-وے)لاحقه- د یو سره استعمالېدونکې لاحقه چې د یواځې والی معنٰی ورکوی -

سته:(سته)فعل- شته- موجود- د شته بل قرأت-

سته:(سته)اسم- مرسته- پره جنبه- حمایت-

ستهٔ:(ستهٔ)اسم- (۱)مال- دولت- (۲)وجود- هستی-

ستی:(س-تی)اسم صفت- پهٔ اور سوے- پهٔ اور سوزېدلے- کباب شوے- لمبه شوے- د هندوانو هغه رسم چې ښځه پکښې د مړ خاوند سره اور کښې سېزلے شی-

ستۍ:(س-تۍ)اسم صفت- واحد- مؤنث- هغه هندوه ښځه چې د مړ خاوند د پاره بل شوی اور کښې پهٔ ژوندئ ځان وسیزی-

ستۍ:(ستۍ)اسم- مؤنث- دوایۍ کښې پکارېدونکے یو قسم بوټے- شاتره- شاه تره-

سټ:(سټ)اسم صفت- تباه- برباد- هلاک-

سټاره:(سټا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دا کلمه د سولې سره یو ځاۍ راځی لکه سوله سټاره ې سره وکړه- (افغانستان)-

سټاله:(س-ټا-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سټل-

سټ سمټ:(سټ-س-مټ)اسم صفت- بېکاره- لټ- سُست- ناراسته-

سټک:(س-ټک س-ټک)اسم- واحد- مذکر- د لرګی او اُسپنې هغه مشترکه اوزار چې مېخ وغېره پرې ټکوهلے شی-

سټکورے:(سټ-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)نیم سوے لرګے یا ږوړی- (۲)بېخ- وبخ- بنیاد-

سټل:(س-ټل)اسم- واحد- مذکر- مجموعی طور- یک مشت- ښېخی- ګرد- پهٔ یوه مخه- سټاله- سټله-

سټوپ:(سټوپ)اسم- واحد- مذکر- د خاورو د ټېلو نغرے- (م- انګریزی سټو)

سټ وټ:(سټ-وټ)اسم صفت- تباه برباد- خوار و زار- هلاک-

سټوډیو:(سټو-ډی-یو)اسم- واحد- مذکر- هغه مخصوص ځاۍ چې د ربډیو، ټېلی وژن یا فلم اداکاران او صداکاران پکښې د خپل فن او هنر مظاهره کوی- (م- انګریزی)-

سټوکمار:(سه-ټوک-مار)اسم- واحد- مذکر- هغه سړے چې د سر د وېښتو څهٔ حصه ې پهٔ تندی پرته وی- مؤنث سټوکماره-

سټوکے:(سه-ټو-کے)اسم- واحد- مذکر- د سر د وېښتو هغه برخه چې پاس پهٔ تندی پرته وی-

سټول:(سه-ټ-ول)مصدر متعدی- تباه کول- بربادول- ورانول- ګډوډول- ګډوډ کول-

سټون:(سه-ټه-ون)حاصل مصدر- وګورئ سټول-

سټونکے:(سه-ټه-وون-کے)اسم فاعل- جمع سټونکی- مؤنث سټونکې- وګورئ سټول-

سټونګ:(سه-ټه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سټول-

سټونه:(سه-ټه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سټول-

سټېشن:(سټې-شن)اسم- واحد- مذکر- د اورګاډی د اودرېدو او روانېدو ځاۍ-

سجاد:(سج-جاد)اسم فاعل- سجده کونکے- خداۍ ته سر ښکته کونکے- ډېرې سجدې کونکے-

سجاده:(سج-جا-ده)اسم- واحد- مؤنث- د مونځ کولو ځاۍ- جاۍ نماز- جانماز- مسله- (م- فارسی)-

سجاده نشین:(سه-جا-ده-نه-شین)اسم- د چا پیر خلیفه یا نائب- هغه سړے چې د پیر په ګدۍ ناست وی-

سجده:(سج-ده)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ زمکه تندے لګونه- خداۍ ته سر ټیټونه- (م- عربی)-

سجره:(س-ج-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شجره-

سجره:(سج-ره)اسم- د وزرې کلکېدنه-

سجع:(سه-جع)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قافیه بند شعر- مقفٰی کلام- قافیه لرونکې خبرې- (۲- اسم صوت)چغهارے- بلغاک- (م- عربی)-

سجل:(س-جل)اسم- واحد- مذکر- (۱)اقرارنامه- عهدنامه- اقرار لیک- احکام نامه- (۲)د قاضی تحریری فېصله- (م- فارسی)-

سجنجل:(س-جن-جل)اسم- واحد- مذکر- اینداره- آئینه- هنداره- (م- فارسی)-

سجڼ:(س-جڼ)اسم- واحد- مذکر- دوست- ملګرے- معشوق- (م- هندی)-

سجود:(س-جود)مصدر/اسم- سجده کونه- خداۍ ته سر ټیټونه- د سجده جمع-

سجیل:(س-جیل)اسم- واحد- مذکر- تحقیق- پته- لټون- پُرس- تپوس-

سجیه:(س-جی-یه)اسم- واحد- مؤنث- خوئ- طبیعت- مزاج- طبع- خُلق- غونے- اخلاق- خصلت- عادت- (م- فارسی)-

سځنی:(سځ-نی)اسم- واحد- مؤنث- سیزنی- د تارونو یا کپړې نه جوړ هغه پړے چې ماشوم پرې اوربې کښې تړی-

سچ:(سچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)خالص- اصل- سوچه- (۲)ښېخی- ټول- ګرد-

سچه:(س-چه)اسم- واحد- مؤنث- د سچ مؤنث- وګورئ سچ- (م- هندی)-

سځ:(سځ)اسم صفت- ګوړ- ببر- کڼ- (افغانستان)-

سځه:(سه-ځه)اسم- واحد- مؤنث- د میرزی سټه- د میرزی د بېخ غټه- د میرزی بېخ-

سحاب:(س-حاب)اسم- واحد/جمع- مذکر- وریځ- اوریځ- لړه- وریځ-

(م- عربي)-

سحار:(س-حار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سحر-

سحر:(س-حر)اسم- واحد- مذکر- (۱)سحار- د ورځې اولنی حصه- د ورځې ابتدا- (۲)رڼا-

سحر:(س-حر)اسم- واحد- مذکر- کوډې- جادو- منتر- افسون-

سحربیان:(س-حر-به-یان)اسم- هغه مقرر یا شاعر چې وینا یې ډېر تاثیر لری-

سحرآمیز:(س-حر-آ-میز)متعلق فعل/صفت- مرغوب- د سحر نه ډک- د جادو نه ډک-

سحردم:(س-حر-دم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سحرګاه-

سحرګاه:(س-حر-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- سحردم- د سحر وخت- صبح دم- سحرمال-

سحرګر:(س-حر-ګر)اسم صفت- سحر کونکے- جادو کونکے- افسون ګر- منتری-

سخ:(سخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بخت- نصیب- طالع- (۲)خوشحالی- خوش نصیبی-

سخا:(س-خا)اسم- واحد- مؤنث- فیاضی- بخښنه- د خدائ په نوم بې کچه خیر خیرات ورکونه-

سخا:(سخا)اسم صفت- ناولے- ګنده- خیرن- بدبویه- چټل-

سخات:(سخات)اسم- واحد- مذکر- اسقاط- د مړی د جنازې نه پس د هغهٔ نه د پاتې شویو لمونځونو او روژو د کفارې ادا کولو په غرض په حاجت مندو نغدې پیسې یا نور څهٔ خیزونه وېشتنه-

سخاتوب:(سخا-توب)اسم- واحد- مذکر- ګنده والے- چټلتیا- خیرن توب-

سخاوالے:(سخا-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سخاتوب-

سخاوت:(س-خا-وت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سخا-

سخاوره:(سخاو-ره)اسم- واحد- مؤنث- سخاوړه- خساوره- خساوزه- د زنبق د ګل ریشه-

سخت:(سخت)اسم- واحد- مذکر- (۱)کلک- مضبوط- ټینګ- محکم- (۲)ګران- مشکل- اړ-

سختاړ:(سخ-تاړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نرمې پخې شوې لبټې شان وربژې- بټې وربژې- یو قسم لبټې- (افغانستان)-

سختاړول:(سخ-تا-ړ-ول)مصدر متعدی- لبټې کول- ابلنول- خوړینول- ډېر نرمول-

سختاړون:(سخ-تا-ړ-ون)حاصل مصدر- وګورئ سختاړول-

سختاړونکے:(سخ-تا-ړه-وون-کے)اسم فاعل- جمع سختاړونکی- مؤنث سختاړونکې- وګورئ سختاړول-

سختاړونګ:(سخ-تا-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سختاړول-

سختاړونه:(سخ-تا-ړ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سختاړول-

سختاړوهٔ:(سخ-تا-ړ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سختاړول-

سختاړېدل:(سخ-تا-ړې-دل)مصدر لازم- لبټې کېدل- ابلنېدل- خوړینېدل- شیره کېدل-

سختاړېدن:(سخ-تا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سختاړېدل-

سختاړېدنګ:(سخ-تا-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سختاړېدل-

سختاړېدنه:(سخ-تا-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سختاړېدل-

سختاړېدونکے:(سخ-تا-ړې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سختاړېدونکی- مؤنث سختاړېدونکې- وګورئ سختاړېدل-

سختاړېدهٔ:(سخ-تا-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سختاړېدل-

سخت دل:(سخت-دل)اسم صفت- (۱)په زړهٔ سخت- نهٔ وېرېدونکے- (۲)بې رحم- ظالم-

سخت ګیر:(سخت-ګیر)اسم صفت- د تکلیفاتو مقابله کونکے-

سخت مزاجه:(سخت-م-زا-جه)اسم صفت- سخت طبع- تېزخویه- بدخویه- تریخ خویه-

سختوالے:(سخت-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- کلکوالے- محکم والے- ټینګوالے-

سختول:(سخ-ته-ول)مصدر متعدی- (۱)کلکول- ټینګول- محکمول- (۲)مشکلول- (۳)تېزول-

سختون:(سخ-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ سختول-

سختونکے:(سخ-ته-وون-کے)اسم فاعل- جمع سختونکی- مؤنث سختونکې- وګورئ سختول-

سختونګ:(سخ-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سختول-

سختونه:(سخ-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سختول-

سختوهٔ:(سخ-ته-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سختول-

سخته:(سخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- تکلیف- مشکل- بده ورځ- کړاؤ- کړاؤ- د سخت مؤنث-

سختی:(سخ-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تکلیف- مشکلات- تنګسه- خواری- (۲)کلکوالے- ټینګوالے-

سختیا:(سخ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سختوالے-

سختېدل:(سخ-تې-دل)مصدر لازم- (۱)کلکېدل- ټینګېدل- (۲)مشکلېدل- ګرانېدل- (۳)تېزېدل-

سختېدن:(سخ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سختېدل-

سختېدنګ:(سخ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سختېدل-

سختېدنه:(سخ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سختېدل-

سختېدونکے:(سخ-تې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سختېدونکی- مؤنث سختېدونکې- وګورئ سختېدل-

سختېدهٔ:(سخ-تې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سختېدل-

سخر:(سخر)اسم- واحد- مذکر- خسر- د ښځې پلار- د خاوند پلار-

سخرګنی:(سخر-ګ-نی)اسم- واحد- مؤنث- د سخر کور- د سخر خپل

خپلوان- خسرګنی-
سخره:(سَخْهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ غرونو کښې زرغُنېدونکے یو خودرو بوټے-
سخره ګټه:(سَخْهٔ-ره-ګ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- کلکه شوې ګټه- سخته شوې ګټه- هغه ګټه چې پهٔ اسانه نهٔ شی سپړدے-
سخړه:(سخ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مزې چرچې- عیش عشرت- (۲)دَ چارې رسی (پړے)- (۳)سربونډې- سربانړه- (۴)دَ ولې یا کاریز کنستلو عمله- ټر-
سخکال:(سخ-کال)اسم- واحد- مذکر- سږکال- روان کال- موجوده کال-
سخن:(سَ-خَن)اسم صفت- واحد- مذکر- نېک بخت- خوش قسمته- طالع من- نېک مرغه- سخور-
سُخن:(سُ-خَن)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)خبرې اترې- خبره- (۲)قول- شعر- نظم- غزل- (م- فارسی)-
سخوبے:(سَخو-بے)اسم- واحد- مذکر- بَبلی- زبوړه-
سخوټ:(سخوټ)اسم- غنډ منډ سړے- (افغانستان)-
سخوتن:(سَخو-تن)اسم- واحد- مذکز- کرمه ایره- ایره خول- پرندے-
سخور:(سَ-خ-ور)اسم صفت- بختور- نېکمرغه- نېک بخته- سخن-
سخوریز:(سَخو-ریز)اسم- دَ پېښی دَ ساګ پهٔ شان یو بوټے- (افغانستان)-
سخورنے:(سَخُور-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ سخوریز دَ بوټی بېخ- (افغانستان)-
سخوښتے:(سَخُوښ-تے)اسم- (۱)دَ خلې کنج- (۲)ماکو- (افغانستان)-
سخوندر:(سَخَون-در)اسم- واحد- مذکر- ځوان غوایهٔ- هغه ځوان سخے چې پهٔ غاښ دوه یا څلور وی- مؤنث سخوندره- جمع سخوندران-
سخوندرکے:(سَخَون-در-کے)اسم تصغیر- وګورئ سخوندر-
سخه:(سهٔ-خه)اسم- واحد- مؤنث- کینه- حسد- رخه-
سخهار:(سخ-هار)اسم صوت- دَ سخ سخ آواز- دَ پېښو یا بل څهٔ څیز دَ راکښلو آواز-
سخی:(سَ-خی)اسم صفت- دَ خدایٔ پهٔ نوم بې دریغه خېر زکوٰة ورکونکے-
سخی توب:(سَ-خی-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ سخی سړی عمل او کردار-
سخے:(سَخے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوا بچے- خوسے- مؤنث سخۍ- جمع سخی-
سد:(سُد)اسم- واحد- مذکر- عقل- هوش- زیا- خود-
سد:(سد)اسم- واحد- مذکر- (۱)دېوال- (۲)دَ ټوپک دَ شپېلی رخی- (۳)خنډ-
سد بد:(سُد-بُد)اسم- واحد- مذکر- عقل فکر- هوش و حواس-
سدره:(سد-ره)اسم- واحد- مؤنث- شکرانه- قلنګ-
سدری:(سد-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث واسکټ- ټټری-
سدکاؤ:(سد-کاؤ)اسم- واحد- مذکر- دَ دستونو بیماری- هېضه-
سدول:(سَد-وَل)اسم صفت- واحد- مذکر- چیت سړے- لنډے سړے-

ټیټ سړے-
سډول:(س-ډول)اسم- واحد- مذکر- (۱)زوړ او بوډا غوئے- (۲)مجازاً جاهل سړے-
سر:(سر)اسم- واحد- مذکر- (۱)کپړی- ککری- کوپړی- دَ سر کاسه- (۲)څوکه- دَ څهٔ څیز پورتنی حصه یا برخه- (۳)خوا- اړخ- طرف- پلو- دَ تلې یو طرف- (۴)مخکښې- مخه- (۵)شروع- اول-
سر:(سر)اسم- واحد- مذکر- راز- پټ- پنا- دَ علانیت ضد- (م- عربی)-
سُر:(سُر)اسم- واحد- مذکر- (۱)چُرت- طبیعت- (۲)دَ سندرو دَ علم موضوع- راګ- آواز-
سراب:(سه-راب)اسم- واحد- مذکر- دوکه- دهوکه- دَ سختې ګرمی لهٔ کبله دَ شګې هغه خلق چې دَ اُبو ګومان پرې کیږی-
سراپا:(س-را-پا)متعلق فعل- سرنه تر پښو پورې- بېخی- بالکل- سراسر- (م- فارسی)-
سراج:(س-راج)اسم- واحد- مذکر- زین جوړونکے او خرڅونکے-
سراجه:(س-را-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه ګټه (زخه) چې دَ انګورو پهٔ څانګو باندې کیږی- (۲)هغه کپړه چې دَ قرآن شریف کایو ته اچولے شی-
سراچه:(س-را-چه)اسم- واحد- مؤنث- وړوکے کور- زړه سرایٔ-
سراسر:(س-را-سر)متعلق فعل- ټول- پهٔ جمع- سر تر پایه- دَ اول نه تر آخره- سراپا-
سرارو:(سه-را-رو)اسم- واحد- مذکر- دَ لاس رګ- شریان-
سراسری:(س-را-س-ری)متعلق فعل- وګورئ سراسر-
سراښ:(سراښ)اسم صفت- لالچی- حریص- بې صبره- ناشکره- نهٔ مړېدونکے-
سراښتوب:(سراښ-توب)اسم- واحد- مذکر- سراښتیا- سراښوالے- حرص- لالچ- بې صبری-
سراښتیا:(سراښ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سراښتوب-
سراښند:(سرا-ښند)اسم صفت- وګورئ سراښ-
سراښوالے:(سراښ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سراښتوب-
سراښول:(سرا-ښ-وَل)مصدر- څوک پهٔ څهٔ خبره یا کار ټینګول- ترغیبول- تحریصول- (افغانستان)-
سراښون:(سرا-ښهٔ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سراښول-
سراښونکے:(سرا-ښهٔ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سراښونکی- مؤنث سراښونکې- وګورئ سراښول-
سراښونګ:(سرا-ښه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سراښول-
سراښونه:(سرا-ښه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سراښول-
سراښی:(سرا-ښی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لالچ- حرص- سراښتوب- (۲- صفت)لالچی- حریص-
سراښېدل:(سرا-ښې-دَل)مصدر لازم- حریصېدل- نهٔ مړېدل- ترغیبېدل-
سراښېدن:(سرا-ښې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سراښېدل-

سرابښېدنګ:(سَرا-بښې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سرابښېدل-

سرابښېدنه:(سَرا-بښې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرابښېدل-

سرابښېدونکے:(سَرا-بښې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع سرابښېدونکي- مؤنث سرابښېدونکې- وګورئ سرابښېدل-

سرابښېدهٔ:(سَرا-بښې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سرابښېدل-

سراغ:(سُ-راغ)اسم- واحد- مذکر- نښه- پته- نښه پته- درک-

سراغ رسان:(سُ-راغ-رَ-سان)اسم صفت- پته لګونکے- معلومات کونکے-

سراغ رساني:(سُ-راغ-رَ-سا-ني)اسم- د سراغ رسان کار-

سرانجام:(سَر-اَن-جام)اسم- واحد- مذکر- کونه- پوره کونه- انجامونه- پائې ته رسونه- ختمونه- پائ- (م- فارسي)-

سرانګه:(سَرانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- څانګه- ښانګه- خرانګه- څانګوټې- جمع سرانګې- (افغانستان)-

سرانه:(سَ-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د دروازې پورتنی درشل- (۲)د سرې په سر پېښې ټولونه-

سرانه:(سَ-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- سر- د کټ سر- سر ته- سر خوا ته-

سراؤ:(سَ-راؤ)اسم صفت- په سر کښې- اولنے- وړومبے-

سراوړه:(سَ-راو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- ګېه کونه- هجوم- جټ- رش-

سراهند:(سَرا-هَند)صفت- لالچي- ضدي- هغه څوک چې په هره خبره سر خوروي- سراښند-

سرايت:(سَ-را-يت)اسم- واحد- مذکر- (۱)اثر- تاثير- (۲)د يو څيز په بل څيز کښې دننه تلنه-

سرايه:(سَرا-يه)اسم- واحد- مؤنث- سرائ- دنيا-

سرائې:(سَرائې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کور- پېره- (۲)د مسافرو د شپې تېرولو ځائې-

سربادي:(سَر-با-دي)اسم صفت- هغه لېونتوب چې د خشکۍ په زجه پېدا کيږي-

سربادے:(سَر-با-دے)اسم صفت- لېونے- عبث غږېدونکے- اپلتې ويونکے- هغه څوک چې د خشکۍ له کبله لېونے شوے وي-

سرباز:(سَر-باز)اسم صفت- فوځي- سپاهي- عسکر- سرښندونکے- د ملک او قوم د پاره دښمن سره جنګ کونکے- جګړن- سرتېرے- (م- فارسي)-

سربازو:(سَر-با-زو)اسم- سر اړخ ته- سر ته- هغه بازو چې د کټ سر ته وي-

سربازي:(سَر-با-زي)اسم- واحد- مؤنث- د سر قرباني ورکونه- سرښندنه- له سره تېرېدنه-

سربالا:(سَر-با-لا)اسم صفت- واحد جمع- مذکر- (۱)د سر د پاسه- (۲)کامياب- کامران-

سربانده:(سَر-بان-ده)اسم- واحد- مؤنث- د پټي هغه لوړه شان حصه چې د اړولو نه پاتې شوې وي-

سربانډے:(سَر-بان-ډے)اسم- واحد- مذکر- د دېوال په سر د لرګيو چجه چې دېوال پرې له بارانه بچ کيږي-

سربانډه:(سَر-بان-ډه)اسم- واحد- مؤنث- سربانډے- سربانه- هغه پړے چې د کچه څرمنې، رسۍ يا مزرۍ نه جوړيږي- هغه رسۍ چې د يوې تړلو د پاره پکارولے شي-

سربانډے:(سَر-بان-ډے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سربانډه-

سربانه:(سَر-با-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سربانډه- جمع سربانې-

سربدال:(سَر-بَ-دال)اسم صفت- کنګال- بې حاله- بې خوده-

سربدالي:(سَر-بَ-دا-لي)اسم- واحد- مؤنث- کنګال توب- بېحالي- بې خودي-

سربداګه:(سَر-به-دا-ګه)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بې پروا- اواره ګرد- لغړ- (۲- اسم)فضول خرچ-

سربډال:(سَر-به-ډال)اسم صفت- سر وهلی- ترمور-

سربر:(سَر-بر)اسم صفت- يو شان- برابر- هم وزن-

سربراه:(سَر-به-راه)اسم- واحد- مذکر- مشر- د يو تنظيم مشر- منتظم- ناظم- د سر سړے- نامي- (م- فارسي)-

سربسته:(سَر-بَس-ته)اسم صفت- پټ شوے- تاله شوے- بند شوے- قفل شوے-

سربشت:(سَر-بشت)اسم- وچته جذبه-

سربلند:(سَر-بَ-لَند)اسم صفت- سرفراز- سرلوړے- شمله جګے- د عزت او آفرين خاوند- (م- فارسي)-

سربلندي:(سَر-بَ-لَن-دي)اسم- واحد- مؤنث- سرلوړي- سرفرازي- عزتمندي-

سربند:(سَر-بَند)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه بند چې سيند يا خوړ ته اچولے کيږي- سرورخ- وتے- (۲)هغه رومال چې سر پرې تړلے شي- (م- فارسي)-

سربندي:(سَر-بَن-دي)اسم- واحد- مذکر- د جينۍ لاس نيوے- د جينۍ خوښونه- جينۍ غوره کونه- کوژدن کونه-

سربندے:(سَر-بن-دے)اسم- وګورئ سربانډے-

سربوټے:(سَر-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- نولے- خربوړے- خړ رنګ لړزونکے د مرې هومره يو ځناور چې د مار سره جنګ ئې ډېر مشهور دے-

سربه:(سَر-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرداره- لاش- سخا شوے لاش- سره- درنګه- (۲)غوښه- قصابي شوے- سربله-

سربيعه:(سَر-به-يه)اسم- واحد- مؤنث- د سر قيمت-

سربېرن:(سَر-بې-رَن)اسم- واحد- مذکر- برڅېرن- برسېرن- پورته والے- زياتي والے- باندې والے-

سربېره:(سَر-بې-ره)اسم- واحد- مؤنث- زياتي- علاوه- د پاسه- پورته- باندې-

سرپ:(سرپ)اسم- واحد- مذکر- يو غرنيزه ونه-

سرپ:(سَرپ)اسم صوت- په دام کښې د ګېرېدو نه پس د مرغۍ د وزرو

وملو آواز-

سرپ:(سبرپ/س-رپ)اسم- د صرف غلط قرأت- وګورئ صرف-

سرپاړے:(سَر-پا-ړے)اسم- واحد- مذکر- د سر او مخ د پړسېدو يو قسم بيمارۍ- سرپاغے-

سرپاغے:(سَر-پا-غے)اسم- وګورئ سرپاړے-

سرپتنوس:(سَر-پت-نوس)اسم- د پتنوس د پاسه اچونکے رومال- پتنوس پوښ-

سرپټه:(سر-پټ-ټه)اسم صفت- (۱)سترمنه ښځه- پرده داره ښځه- (۲)ناوادهٔ ښځه چې چا ليدلې نهٔ وي-

سرپرست:(سَر-پَ-رست)اسم صفت- ساتندويه- څارونکے- ساتونکے- نګهبان- محافظ- د يوې ادارې يا تنظيم مشر- (م- فارسی)-

سرپرستي:(سَر-پَ-رس-تي)اسم- واحد- مؤنث- نګهباني- حفاظت- ساتنه- مشري-

سرپړي:(سَر-پړي)اسم صفت- وګورئ سر پرېکړے-

سر پرېکړے:(سَر-پرې-کړ-ړے)اسم صفت- چې سر ترې پرېکړے شوے وي- چې سر ترې قلم کړے شوے وي-

سرپړے:(سر-پړ-ړے)اسم- واحد- مذکر- د ساچ د خاندان يو قسم مرغۍ چې وزرونه ئې سرهٔ او نور بدن ئې تور وي-

سرپک:(سَر-پک)اسم- سرسري- سطحي-

سرپناه:(سَر-پَ-ناه)اسم- واحد- مؤنث- د سر پټولو ځاے- کور- ډېره- (م- فارسی)-

سرپناهي:(سَر-پَ-نا-هي)اسم- واحد- مؤنث- د پټېدو ځاے- پناه ګاه-

سرپوښ:(سَر-پوښ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرپوش- برغولے- سربند- (۲)يو قسم ټوپک چې يوولس کارتوس خوري- ۳۰۳ رائفل- ترى ناټ ترى ټوپک- ترى ناټرى-

سرپول:(سَر-پَ-ول)مصدر متعدي- مرغۍ بروَل- مرغۍ د وزرو پهٔ رپولو راوستل- د مرغۍ پرار کول-

سرپون:(سَر-پَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ سرپول-

سرپونکے:(سَر-پَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سرپونکي- مؤنث سرپونکې- وګورئ سرپول-

سرپونګ:(سَر-پَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سرپول-

سرپونه:(سَر-پَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرپول-

سرپوهٔ:(سَر-پَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سرپول-

سرپه:(سَر-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)صرفه- دريغ- مخ اړول- (۲)اشتها-

سرپهار:(سَر-پَ-هار)اسم صوت- د مرغۍ د وزرو وهلو آواز- پرهار- پرار-

سر پهٔ سر:(سَر-پهٔ-سر)متعلق فعل- يو شان- يو برابر- مساوي-

سرپېدل:(سَر-پې-دل)مصدر لازم- پرکېدل- پرقېدل- د مرغۍ پهٔ لومه کښې د ګېرېدو پهٔ وخت د وزرو وهلو آواز پيدا کېدل-

سرپېدلے:(سَر-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سرپېدلي- مؤنث سرپېدلې- وګورئ سرپېدل-

سرپېدن:(سَر-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سرپېدل-

سرپېدنګ:(سَر-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سرپېدل-

سرپېدنه:(سَر-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرپېدل-

سرپېدونکے:(سَر-پې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سرپېدونکي- مؤنث سرپېدونکې- وګورئ سرپېدل-

سرپېدهٔ:(سَر-پې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سرپېدل-

سرپيوند:(سَر-پې-وند)اسم- واحد- مذکر- پهٔ يوه (يوې) کښې مغه لرګے چې سر کښې ئې سورے وي-

سرت:(س-رت)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرود- ساز- ټنګ ټکور- (۲)بدن- صورت-

سرتا:(سَر-تا)اسم- واحد- مؤنث- د ښځو د پړونې پيڅو ته ګنډلے شوې ريښمينه ټوټه-

سرتاج:(سَر-تاج)اسم صفت- (۱)خاوند- مېړهٔ- (۲)د مينې تورے-

سر تا سر:(سَر-تا-سَر)متعلق فعل- وګورئ سراسر-

سرتاو:(سَر-تاو)اسم- واحد- مذکر- سرکښي- سرکشي- سرغړونه-

سر تر پايه:(سَر-تر-پا-يه)متعلق فعل- سر نه تر پښو پورې- ټول- سراسري-

سر تر سره:(سَر-تر-س-ره)متعلق فعل- وګورئ سراسر-

سرتړلے:(سَر-ته-ړهٔ-لے)اسم صفت- سرپټے- سربسته- پټ-

سرتړونے:(سَر-تَ-ړو-نے)اسم- واحد- مذکر- رومال- سرپيچک- مغه رومال چې سر پرې تړلے شي- دسمال-

سرتمبکي:(سَر-تم-به-کي)اسم- واحد- مؤنث- ضد- ځېل- سرکشي-

سرتمبه:(سَر-تم-به)اسم صفت- واحد- مذکر مؤنث- سرکش- ضدي- ځېل ناک-

سرتناو:(سَر-تَ-ناو)اسم- واحد- مذکر- د مرزانو د جال مغه پړے چې د جال پهٔ يو سر کښې وي او جال پرې راکښلے شي-

سرتور:(سَر-تور)اسم صفت- (۱)چې سر ئې څرګند وي- سرلوڅ- سربربنډے- (۲)بې عزته- ذليل- شرمنده-

سرتوروالے:(سَر-تور-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- بې عزتي- ذليلي- خواري- شرم-

سرتورول:(سَر-تو-رَ-ول)مصدر متعدي- (۱)سر ښکاره کول- سر لوڅول- سر بربنډول- (۲)بې عزته کول- شرمول- خوارول- ذليله کول-

سرتورون:(سَر-تو-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ سرتورول-

سرتورونکے:(سَر-تو-رَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سرتورونکي- مؤنث سرتورونکې- وګورئ سرتورول-

سرتورونګ:(سَر-تو-رَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سرتورول-

سرتورونه:(سَر-تو-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرتورول-

سرتوروهٔ:(سَر-تو-رَ-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ سرتورول-
سرتوره:(سَر-تو-ره)اسم صفت- دَ سرتور مؤنث- وګوریٔ سرتور-
سرتوری:(سَر-تو-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بې عزتي- سپکوالے- (۲)کنډتون- کنډتوب-
سرتورېدل:(سَر-تو-رې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)بې عزته کېدل- سپکېدل- شرمېدل- خوارېدل- (۲)مېړهٔ مړ کېدل- کنډېدل-
سرتورېدن:(سَر-تو-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګوریٔ سرتورېدل-
سرتورېدنګ:(سَر-تو-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ سرتورېدل-
سرتورېدنه:(سَر-تو-رې-دَ-نه)حاصلِ مصدر- وګوریٔ سرتورېدل-
سرتورېدونکے:(سَر-تو-رې-دُوَن-کے)اسمِ مفعول- جمع سرتورېدونکی- مؤنث سرتورېدونکې- وګوریٔ سرتورېدل-
سرتورېدهٔ:(سَر-تو-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګوریٔ سرتورېدل-
سرتورے:(سَر-تو-رے)اسم صفت- سرتور- (۱)سرلوڅے- (۲)بې عزته-
سرتوے:(سَر-تو-یے)اسم- وګوریٔ سرتړونے-
سرتېر:(سَر-تېر)اسمِ صفت- بهادر- دَ سر پروا نهٔ کونکے- مؤنث سرتېره- (م- فارسي)-
سرتېری:(سَر-تې-ری)اسم- واحد- مؤنث- بهادري- شجاعت- مېړانه-
سرتېز:(سَر-تېز)اسمِ صفت- وګوریٔ سرتېزه- (م- فارسي)-
سرتېزه:(سَر-تې-زه)اسمِ صفت- تندخویه- هغه څوک چې سرتېزی کوی-
سرتے:(سَ-رَ-تے)اسمِ صفت- سرګردانَ- تلولے- وارخطا- ترهور-
سرټیټی:(سَر-ټی-ټی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اطاعت- عجز- انکساری- (۲)بدنامي- بې عزتي-
سرټیټے:(سَر-ټی-ټے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)اطاعت ګزار- عاجز- منکسر- (۲)بدنام- بې عزته-
سرج:(سُرج)اسم- واحد- مذکر- زین- دَ اَس زین-
سرجمع:(سَر-جَ-مع)صفت- ټول- غنډ- واړه- ګرد-
سرجن:(سَر-جن)اسم صفت- هغه ډاکټر چې دَ اَپرېشن پهٔ ذریعه علاج کوی- (م- انګریزي)-
سرجی:(سَر-جی)اسمِ صفت- زین جوړونکے- زین خرڅونکے-
سرخوړ:(سَر-خوړ)اسمِ صفت- سرښکته- سرلاندې- سرخوړند-
سرچشمه:(سَر-چش-مه)اسم- واحد- مؤنث- سرچینه- هغه ځاۍ چرته چې اُبهٔ راوځی- منبع- (م- فارسي)-
سرچینه:(سَر-چی-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګوریٔ سرچشمه-
سرحد:(سَر-حد)اسم- واحد- مذکر- برید- پُوله- حد- وېش- دَ دوۀ ملکونو دَ علاقې مشترک حد- (م- فارسي)-
سرحدی:(سَر-حَ-دی)صفت- دَ سرحد سَره متعلق- وګوریٔ سرحد-
سرحلقه:(سَر-حل-قه)اسم صفت- سردار- مشر- سرخېل- رئیس- (م- فارسي)-
سرخ:(سرخ)اسم- وګوریٔ فالک-
سرخا:(سَر-خا)اسم- واحد- مؤنث- دَ سترګو وړه ننکی- غُلنکې-
سُرخاب:(سُر-خاب)اسم- واحد- مذکر- یو قسم دَ اُبو مرغی چې ټوله شپه دَ خپلې مادې نه جُدا وی- سریغ- سرخاوی-
سرخار:(سَر-خار)اسم- واحد- مذکر- دَ غنو شپول- دَ غنو دېوال- شپول-
سرخاوی:(سَر-خا-وی)اسم- واحد- مؤنث- سریغ- سرخاب-
سرخ باد:(سُرخ-باد)اسم مذکر- دَ یو مرض نامه چې پهٔ وجود سره لمبه راشی-
سرخچه:(سرخ-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه سور زردالو چې تریو خوند لری- (۲)یو قسم غنم-
سرخرکه:(سَر-خه-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم مارغهٔ چې دَ وړو مارغانو مازغهٔ خوری- کله خورکه-
سرخرو:(سُرخ-رُو)اسمِ صفت- کامیاب- کامران- فاتح- ګټونکے- (م- فارسي)-
سرخروئی:(سرخ-رو-ئی)اسم- واحد- مؤنث- کامیابی- کامراني- فتح- ګټه-
سرخط:(سَر-خط)اسم- واحد- مذکر- دَ یو مضمون یا کتاب نوم- سُرخي- (۲)غټ خبر- خاص خبر- سرنامه- سرلیک-
سرخک:(سَر-خک)اسم- یو قسم بوټے-
سرخکه:(سَر-خَ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګوریٔ څرخکه-
سرخوړی:(سَر-خو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ سر درد- (۲)تکلیف- زحمت- بوج-
سرخوړے:(سَر-خو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګوریٔ سرخوړی-
سرخول:(سَر-خه-وَل)مصدرِ متعدی- غرخول- اچول- ګرزول- راسرخول- څرخول-
سرخول:(سَر-خول)اسم- واحد- مذکر- دَ سر پټولو دَ پاره ټوپی یا څهٔ داسې بل شے-
سرخه:(سُر-خه)اسم- واحد- مذکر- (۱)سمند (اَس)- (۲)ښکلے- سوربخن-
سرخی:(سَر-خی)اسم- واحد- مؤنث- دَ زنانو دَ سینګار یو سور رنګ چې پهٔ شونډو او رخسارونو یٔ لګوی- (م- فارسي)-
سرخینے:(سر-خی-نے)اسم- واحد- مذکر- سرخینې چاړهٔ- دَ سر خرېلو چاړهٔ- پاکی-
سرخېل:(سَر-خېل)اسم صفت- دَ خاندان یا قبیلې سربراه- مشر- سرلښکر- جمع سرخېلان- (م- فارسي)-
سردار:(سَر-دار)اسم صفت- (۱)مشر- رئیس- اختیارمند- (۲)سپه سالار- دَ لښکر مشر- (م- فارسي)-
سردارو:(سر-دا-رُو)اسم- واحد- مذکر- پاره- سیماب-
سرداری:(سَر-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مشری- اختیارمندی- (۲)دَ لښکر مشری- سپه سالاري-
سرداری:(سَر-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم تماچه- ۲۸ بور تماچه- سرداری تماچه-

زبر (خ-بهٔ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زبر (کِ-تاب)، جزم (شکون)، ۀ (زَ-ره)، ۀ (ډو-بې-دهٔ)

سردانه:(سَر-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ولي دَ سر ورخ-
سردردی:(سَر-دَر-دی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سرخوږی- (۲)ربړ- تکلیف- مشکلات-
سردره:(سَر-دَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ درې سر- دَ درې لوړه برخه-
سردری:(سَر-دَ-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ دروازې دَ چوکاټ برنے لرگے-
سردست:(سَر-دست)متعلق فعل- فی الحال- حضور- موجوده- حاضر وخت- سمدلاسه- دستی- (م- فارسی)-
سردوباره:(سَر-دُو-با-ره)اسم- دوباره دَ سره شروع کونه- پۀ دوېم خل شروع کونه-
سرده:(سَر-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ خربوزې دَ خاندان یوه مېوه چې دَ یخنی پۀ موسم کښې راځي-
سردی:(سَر-دی)اسم- واحد- مؤنث- یخنی- دَ یخنی موسم- ژمے- دَ گرمی ضد-
سررشته:(سر-رِش-ته)اسم- واحد- مؤنث- سرشته- سرښته- (۱)سمبالونه- تدبیر- (۲)مطلب- مقصد- (۲)رواج- شعبه- محکمه- (م- فارسی)-
سرلښکر:(سَر-لَښ-کَر)اسم صفت- جرنېل- سپه سالار- مشر- رئیس- دَ لښکر مشر-
سرزد:(سَر-زد)متعلق فعل- ظاهرېدنه- ښکاره کېدنه- پۀ ډاگه کېدنه-
سرزمین:(سر-زَ-مین)اسم- واحد- مؤنث- ولایت- زمکه- وطن- ملک- مېواد- (م- فارسی)-
سرزنش:(سَر-زَ-نش)اسم- واحد- مذکر- ملامتیا- ملامتوالے- ترټنه- جزا ورکونه-
سرزور:(سر-زور)اسم صفت- سرټمبه- هوږے- ضدی- سرکشه- (م- فارسی)-
سرزوری:(سر-زو-ری)اسم- واحد- مؤنث- هوډه- سرکشی- سرټمبگی- نافرمانی-
سرزوړند:(سَر-زَوَ-ړَند)اسم صفت- سرخوړند- سرښکته- څوړ-
سرزوړه:(سَر-زَوَ-ړه)اسم صفت- تیټ شوے- خوښېدونکے ځاۍ-
سرزیاتی:(سَر-زَیا-تی)اسم- واحد- مؤنث- دَ خپل حق نه زیاتی څیز- چُنگے-
سرزیری:(سَر-زی-ری)اسم مرکب- سرزوری-
سرژه:(سَر-ژه)اسم- واحد- مؤنث- وُگورئ سرړه-
سرړه:(سَر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غرڅنی گېډه- (۲)مجازاً مضبوطه او تکړه ښځه-
سرس:(سرس)اسم- واحد- مؤنث- دَ یوې ونې نوم-
سرسام:(سَر-سام)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو مرض دے چې دَ تبزې تبې لۀ کبله پکښې دَ سړی مازغۀ کار پرېږدي- (۲- صفت)گنگس- بې سُده- نیم پاگل- باساره-
سرسایه:(سَر-سا-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سر صدقه چې دَ وړوکی اختر پۀ موقع حاجتمندو ته ورکولے شي-
سرسبز:(سَر-سبز)اسم- واحد- مذکر- (۱)شین گوشین- ښېرازه- (۲)آباد او خوشحال-
سر سترگو:(سَر-سْتَر-گو)اسم مرکب- پۀ سر سترگو- پۀ ځار قربان- پۀ ډېره مینه- پۀ ډېره خوښی- پۀ پوره زړۀ-
سر سترگې:(سَر-سْتَر-گې)اسم مرکب- سر ځنې- سر غوړونه- ړمنځونه- سترگې تورونه- ځان جوړونه او سینگارونه-
سرستغی:(سَر-سْتۀ-غی)اسم مرکب- سرزوری-
سرسر:(سَر-سَر)اسم صوت- (۱)دَ مار پرشار- (۲)دَ هوا لگېدو آواز-
سرسری:(سَر-سَ-ری)اسم صفت- دَ سر دَ پاسه- سطحی- دَ اُبو دَ سر دَ پاسه- هغه څیز چې زمکه کښې ډېر ښخ نۀ وی- معمولی- لړ-
سرسری:(سَر-سَ-ری)اسم- واحد- مؤنث- توقه- دَ جوارو وړے چې دانې ترې رژولے شوی وی- وُگورئ توکه-
سرشار:(سَر-شار)اسم صفت- (۱)تر خُلې خُلې ډک- ډی پۀ ډی- موړ- (۲)مست- خوشحال- (م- فارسی)-
سرشاری:(سَر-شا-ری)اسم- واحد- مؤنث- خوشحالی- آسودگی- مستی-
سرشانه:(سر-شا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ اُوږې سر- اوږگی- (۲)دَ اُوږې پټې- (م- فارسی)-
سرشت:(سَ-رِشت)اسم- واحد- مذکر- پېدائشی خوئ خصلت- عادت- فطرت- مزاج-
سرشته:(س-رِش-ته)اسم صفت- وُگورئ سررشته- سرښته-
سرشته دار:(سَ-رِش-ته-دار)اسم- واحد- مذکر- کتونکے- کلرک- بابو-
سرشوخ:(سَر-شوخ)اسم صفت- واحد- مذکر- مست- خوش طبع- زنده دل-
سرشی:(سَر-شی)اسم- واحد- مؤنث- دَ باښې دَ خاندان یوه مرغی-
سرښور:(سر-ښور)اسم صفت- سرزوره- سرکښه- سرکشه- یاغی- زورور-
سرطان:(سَر-طان)اسم- واحد- مذکر- کونی کبر- پنجه پاو- کونیکرپ- چنگاښ- یو آبی ځناور چې دَ چیندخې نه وړوکے او دَ جولاگی پۀ نمونه وی- (۲)دَ آسمان څلورم برج- (۳)یو موذی مرض چې دَ کېنسر پۀ نامه مشهور دے-
سرعت:(سَر-عَت)اسم- واحد- مذکر- تُندی- تېزی- تلوار- بیړه- چټکتیا- تادی- جلتی-
سرغ:(سرغ)اسم- واحد- مذکر- زین- دَ اَس زین- کاټی-
سرغاړے:(سَر-غا-ړے)اسم صفت- باغی- سرکش- نافرمان-
سرغړاند:(سَر-غَ-ړاند)اسم صفت- واحد- مذکر- باغی- سرکښ-
سرغړاندی:(سَر-غَ-ړان-دی)اسم- واحد- مؤنث- سرکشی- باغی توب- یاغی توب- نافرمانی- تورغوړی-
سرغړاندے:(سَر-غَ-ړان-دے)اسم صفت- باغی- سرکش- نافرمان-
سرغړل:(سَر-غَ-ړَل)مصدر- وُگورئ سرغړول-
سرغړول:(سَر-غَ-ړ-وَل)مصدر- بغاوت کول- نافرمانی کول- اطاعت نۀ کول-

سرغړنه:(سَر-غُ-ړَ-نه)اسم- سرکشي- نافرماني- بغاوت-

سرغړون:(سر-غُ-ړ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سرغړول-

سرغړونکے:(سَر-غُ-ړ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سرغړونکي- مؤنث سرغړونکې- وګورئ سرغړول-

سرغړونګ:(سر-غُ-ړ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سرغړول-

سرغړونه:(سر-غُ-ړ-وَ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرغړول-

سرغړوني:(سَر-غُ-ړو-ني)اسم- مؤنث- سرغړاندي- سرکشي- بغاوت-

سرغشے:(سَر-غَ-شے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شرغشے-

سرغندے:(سر-غَن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- سرغندوئ- مشر- دَ سر سړے- لار ښودونکے- سرکرده- سرغنه-

سرغندوئ:(سَر-غَن-دوئ)اسم صفت- (۱)سرکرده- (۲)وګورئ سرغندے- (۲- اسم)يو قسم واښهٔ-

سرغنده:(سر-غَن-ده)اسم صفت- بې فکره- خود فراموش- وګورئ سرغندے- جمع سرغنديان-

سرغنه:(سر-غَ-نه)اسم صفت- واحد- مذکر- سرغندوے- مشر- دَ سر سړے- لار ښود- سردار- (م- فارسي)-

سرغوپه:(سر-غو-په)اسم صفت- پهٔ اُبو کښې ډوب- پټ- ډوب-

سرفراز:(سَر-فَ-راز)اسم صفت- (۱)کامياب- کامران- (۲)سرلوړے- عزت ګټونکے- فتح کونکے- (م- فارسي)-

سرفرازي:(سَر-فَ-را-زي)اسم- واحد- مؤنث- سرلوړي- فخر- عزت-

سرقت:(سر-قت)اسم صفت- پټ- ورک- بې درکه- سرقه-

سرقلے:(سر-قَل-لے)اسم- واحد- مؤنث- پېشکشي- پېشګي- ايډوانس-

سرقه:(سَر-قه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سرقت-

سرک:(سَ-رَک)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سړک-

سر کا:(سَر-کا)امر- مخ کا-

سرکار:(سَر-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)حکومت- دَ ملک واک اختيار- (۲)اختياردار- کارفرما- (م- فارسي)-

سرکارمړ:(سَر-کار-مړ)اسم صفت- سرکار مړ- دَ ګهو رَمو مشر مړ-

سرکاري:(سَر-کا-ري)اسم- دَ سرکار سره تعلق لرونکے-

سرکاه:(سر-کاه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم ښځينه پروڼے-

سرکپ:(سَر-کپ)اسم صفت- (۱)سر پرېکونکے- سر ختمونکے- (۲- اسم)پهٔ سر کښې ربينه سرکو- (عام طور سره غنمو دَ پاره استعماليږي)-

سرکتار:(سر-کَ-تار)اسم صفت- سرکښ-

سرکچوړه:(سر-که-چو-ړه)اسم- قمري- سرکچه-

سرکچه:(سَر-که-چه)اسم- واحد- مؤنث- سرکچوړه- قمري- کورکوړي- سېلمه- کوګوشتکه- کوګړي-

سرکردګي:(سر-کر-دَ-ګي)اسم- واحد- مؤنث- مشري- مشرتوب-

سرکرده:(سَر-کر-ده)اسم صفت- سرغندوے- سرغندوئ- سرغنه- (۱)مشر-

دَ سر سړے- (۲)حاکم- آمر- (م- فارسي)-

سرکس:(سَر-کَس)اسم- واحد- مذکر- پهٔ ويړ مېدان مغه احاطه شوے ځائې چې تماشې تنداري پکښې معاوضتاً ښودلے شي- سرکش-

سرکش:(سَر-کَش)اسم صفت- باغي- سرکښ- نهٔ منونکے- نامنونکے- نافرمان-

سرکشي:(سَر-کَ-شي)اسم- واحد- مؤنث- باغي توب- بغاوت-

سرکښ:(سَر-کَښ)اسم صفت- وګورئ سرکش-

سرکښي:(سَر-کَ-ښي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سرکشي-

سرکلے:(سَر-کَ-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ نوي پېدا شوي ماشوم نه پهٔ وړومبي ځل دَ سر کلولو رسم-

سرکنده:(سَر-کَن-ده)اسم- واحد- مؤنث- تلوار- تېزي- تُندي- تادي- تېزه منډه- بې خنډه منډه-

سرکوب:(سَر-کوب)اسم- واحد- مذکر- ترټل- وهل ټکول- ماتې ورکول- سرکوبي-

سرکوبي:(سَر-کو-بي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سرکوب-

سرکوتن:(سَر-کو-تَن)اسم صفت- سرګردان- پهٔ بده ورځ- پرېشان حال- بدحال-

سرکوته:(سر-کو-ته)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- وګورئ سرکوتن-

سرکودن:(سر-کو-دن)اسم صفت- واحد- مذکر- سرګردان- ناقلاره- ناقراره- بې آرامه- پرېشان- خفه- سرسام-

سرکودنه:(سَر-کو-دهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پرېشانه- خفه- اوتر-

سرکودنے:(سَر-کو-دهٔ-نے)اسم صفت- سرکودن- اوتر- وارخطا- پرېشانه-

سرکور:(سَر-کور)اسم- واحد- مذکر- سرکار- حکومت- حاکم-

سرکوزتوب:(سَر-کُوز-توب)اسم- واحد- مذکر- بې غېرتي- بې شرمي- بې ننګي-

سرکوزي:(سَر-کو-زي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شرمندګي- بې شرمي- بې عزتي- (۲)بې غېرتي- دووسي-

سرکوزے:(سَر-کُو-زے)اسم صفت- (۱)شرمنده- بې شرمه- بې عزته- (۲)بې غېرته- دووس-

سرکول:(سر-کول)اسم- واحد- مذکر- دَ چلم سر- دَ چلم ټوپي-

سرکول:(سَر-کَ-وَل)مصدر- (۱)چلم لګول- (۲)غولول- (۳)راکښل- پهٔ زمکه راکښل- ټېله ورکول- (۴)سرمينځل- کنډه کول او اُبدل- (۵)دَ کړکۍ قلم جوړول- (۶)نښه خطا کول- (۷)دانه چاود کول-

سرکول:(سَر-کول)اسم- دَ اُبو مخې ته بند يا پوله اچونه- دَ اُبو پټم-

سرکومه:(سر-کو-مه)اسم- دَ کاريز دَ څاه (کوهي) بام يا سر پټونے-

سرکونړو:(سر-کون-ړو)اسم صفت- (۱)پېغلتوب ته نژدې جينۍ- (۲- اسم)وګورئ دَ سر کونړۍ دويمه معنی-

سرکونړي:(سَر-کون-ړي)اسم- واحد- مؤنث- کانټي- بازيګره- سر ښکته

پورته کونه- (۲)یو قسم صحرانې بوټې-

سرکونړې:(سَر-کون-ړې)اسم- واحد- مذکر- د وړو ماشومانو د سر هغه لوڼې او وېښتهٔ چې د یو خاص مراد پهٔ نیت ساتلې شوي وي-

سرکوړې:(سر-کوړې)اسم- واحد- مذکر- گونړی مال- د غنمو د وریو غوبلونه- پرمال-

سرکه:(سر-که)اسم- واحد- مؤنث- یوه تروه مائع چې د انگورو یا گنې وغیره د اُبو نه جوړیږي او د اچار اچولو پهٔ کار کښې پکاریږي-

سرکي:(سَر-کي)اسم- واحد- مذکر- وگورئ ارغنج- د الوبالو یو قسم-

سرکېدل:(سَر-کې-دَل)مصدر- (۱)مراد حاصلېدل- (۲)چلم لگېدل- (۳)د اُبو مخې ته بند ترلې کېدل- (۴)نبه خطا کېدل-

سرکېدونکې:(سَر-کې-دون-کې)اسم صفت- پهٔ خبره رسېدونکې- ژر پوهېدونکې- د خبرې مقصد ته رسېدونکې-

سرگا:(سَر-گا)اسم- واحد- مذکر- پړونې- ټیکرې- څادر- پټو- سالو-

سرگجي:(سر-گ-جي)اسم- واحد- مؤنث- ماده کوړکوړی-

سرگردان:(سَر-گر-دان)اسم صفت- (۱)نارامه- ناقلاره- زړهٔ ستړې- (۲)پرېشانه- بدحاله- پهٔ بده ورځ- (م- فارسي)-

سرگردانول:(سَر-گر-دا-ن-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)بې آرامه کول- پهٔ تکلیف کول- ناقلاره کول- (۲)پرېشانه کول- بدحاله کول- پهٔ بده ورځ کول-

سرگردانون:(سَر-گر-دا-ن-وَن)حاصل مصدر- وگورئ سرگردانول-

سرگردانونکې:(سَر-گر-دا-ن-وون-کې)اسمِ فاعل- جمع سرگردانونکي- مؤنث سرگردانونکې- وگورئ سرگردانول-

سرگردانونگ:(سَر-گر-دا-ن-ونگ)حاصل مصدر- وگورئ سَرگردانول-

سرگردانونه:(سَر-گر-دا-ن-وَه-نه)حاصل مصدر- وگورئ سرگردانول-

سرگردانه:(سَر-گر-دا-نه)اسمِ صفت- پرېشانه- لالهانده- ځلبلانده- سرگردان-

سرگرداني:(سَر-گر-دا-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بې آرامي- ناقلاري- (۲)پرېشاني- بدحالي- تکلیف-

سرگردانېدل:(سَر-گر-دا-نې-دَل)مصدرِ لازم- بې آرامه کېدل- ناقلاره کېدل- پرېشانه کېدل-

سرگرم:(سر-گ-رَم)اسم صفت- پیش پیش- پهٔ څهٔ کار کښې ډېر پهٔ شوق برخه اخستونکې- (م- فارسي)-

سرگړدان:(سَر-گړ-دان)اسم صفت- وگورئ سرگردان-

سرگړداني:(سَر-گړ-دا-ني)اسم- واحد- مؤنث- وگورئ سرگرداني-

سرگړې:(سر-گهٔ-ړې)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ژیړ رنگ لرونکې زیړ غرنیز واښهٔ- نباتاتي نوم سیم بوپوگون گوارن کیوسه -(CYMBOPOGON GAWARANCUSA)-

سرگزشت:(سر-گ-زشت)فعل/اسم- واقعه بیانونه- سر دوباره- تېر شوې حال-

سرگشته:(سر-گش-ته)اسم- حیران و پرېشان- اریان دریان- وارخطا- بې خوده- بې هوشه- لېونې- اوتر-

سرگله:(سَر-گ-له)اسم- واحد- مؤنث- هغه محصول چې د څاروو پهٔ سر اخستې شي-

سرگم:(سَر-گم)اسم- واحد- مذکر- د موسیقي پهٔ سُرونو کښې یو نوم-

سرگنگس:(سَر-گنگ-گس)اسم صفت- (۱)ویرېدلې- وارخطا- (۲)بې هوشه- (۳)گیچ- سرگیچ- واگن- واگڼ- سربېال- ډېهوب-

سرگنلي:(سر-گن-لي)اسم- واحد- مذکر- سترغلي- د سترگو د پاسه پرده- سترگلي-

سرگنه:(سر-گه-نه)اسم صفت- مشهور- معلوم-

سرگنې:(سَر-گهٔ-نې)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټې چې پهٔ ډبرینه زمکه کښې کیږي- وگورئ سرگړې-

سرگوشي:(سَر-گو-شي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پس پس کونه- پهٔ غوږونو کښې یو بل سره خبرې کونه- گنگوسې- غوږې- پسپسکې- (۲)چُغلي کونه- غیبت کونه-

سرگومه:(سر-گو-مه)اسمِ صفت- بې هوشه- بدحاله- بې سُده- پهٔ ځان نهٔ پوهېدونکې-

سرگه:(سر-گه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم څادر چې پهٔ خوړندو کپړې خوروشي- (افغانستان)-

سرگیچ:(سر-گیچ)اسم صفت- کاواک- گنگس- پهٔ ځان نهٔ پوهېدونکې- سرگنگس-

سرگېجن:(سَر-گې-جن)اسم صفت- هغه سړې چې د گوشت خورې پهٔ مرض اخته وي- (افغانستان)-

سرگېړې:(سر-گې-ړې)اسم- وگورئ ډپ نمبر ۲-

سرگي:(سر-گي)اسم- پېشمنې- چرباتکې- پهٔ روژو کښې د نیمې شپې نه پس خوراک-

سرلاټې:(سر-لا-ټې)اسم- واحد- مؤنث- وگورئ سرکونړې-

سرلایه:(سر-لا-یه)اسم صفت- کاواکه- بې کاره- بې مقصده-

سرلوڅې:(سر-لو-څې)اسم صفت- چې سر ئې بربنډ وي- چې پهٔ سر سرتور وي- سرتورسرې- مؤنث سرلوڅې-

سرلور:(سر-ل-ور)اسم- وگورئ ترسکن-

سرلوړتوب:(سَر-لوړ-توب)اسم- واحد- مذکر- سربلندي- سرفرازي- عزت- افتخار-

سرلوړتیا:(سر-لوړ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وگورئ سرلوړتوب-

سرلوړوالې:(سَر-لوړ-وا-لې)اسم- واحد- مذکر- وگورئ سرلوړتوب-

سرلوړي:(سَر-لو-ړي)اسم- واحد- مؤنث- سربلندي- سرفرازي- افتخار-

سرلوړې:(سَر-لو-ړې)اسم صفت- سربلند- سرفراز- کامیاب- کامران- د عزت خاوند- عزت گټونکې-

سرلوئ:(سر-لو-ئ)اسم- واحد- مؤنث- وگورئ سرلوړي-

سرلې:(سر-لې)اسم- وگورئ پشرلې-

"ئ" (ځې-رل)، "ې" (هې-ره-وَل)، "ی" (ډېا-لې)، "ې" (تن-دېې) تفصیل د پاره وگورئ تشریحات صفحه ۱

سرماتک:(سر-ما-تک)اسمِ صفت- جګړالو- فسادي- جنګيالے-

سرماتوک:(سر-ما-توک)اسمِ صفت- وګورئ سرماتک-

سرماتول:(سَر-مَا-تَ-وَل)مصدر- (۱)دَ څۀ څيز سر دوه درې برخې کول- (۲)سر زخمي کول-

سرماتون:(سَر-ما-تَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ سرماتول-

سرماتونکے:(سَر-ما-تَ-وونَ-کے)اسمِ فاعل- جمع سرماتونکي- مؤنث سرماتونکې- وګورئ سرماتول-

سرماتونګ:(سَر-ما-تَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سرماتول-

سرماتونه:(سَر-ما-تَ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سرماتول-

سرماتوۀ:(سَر-ما-تَ-وۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ سرماتول-

سرماتي:(سَر-ما-تي)اسم- واحد- مؤنث- جنګ جګړه- جنجال-

سرماتے:(سر-ما-تے)اسم- واحد- مذکر- سرماتوک- جنګړه- جنګېره- دَ دېوال اخري پخسه-

سرماغزن:(سَر-ماغ-زن)اسمِ صفت- ګړبند- ګړبېدونکے- سرمغزن-

سرماغه:(سَر-ما-غه)اسم- واحد- مؤنث- شيرغشے- بړے- يو قسم واښۀ چې سر ئې دَ غشي پۀ شان تېرۀ وي-

سرمال:(سر-مال)اسم- واحد- مذکر- هغه پړے چې دَ باري څاروي دَ پاسه پرې بار تړلے شي-

سرمالول:(سَر-ما-لَ-وَل)مصدر- بار تړل-

سرمالون:(سَر-ما-لَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ سرمالول-

سرمالونکے:(سَر-ما-لَ-وونَ-کے)اسمِ فاعل- جمع سرمالونکي- مؤنث سرمالونکې- وګورئ سرمالول-

سرمالونګ:(سَر-ما-لَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سرمالول-

سرمالونه:(سَر-ما-لَ-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سرمالول-

سرمالي:(سَر-ما-لي)اسم- واحد- مؤنث- ړک والے- تر خُلې خُلې ډکوالے-

سرمايه:(سَر-ما-يه)اسم- واحد- مؤنث- پنګه- ذخيره- مال دولت- ډېرې جمع شوې پېسې- (م- فارسي)-

سرمايه دار:(سَر-ما-يه-دار)اسمِ صفت- مالدار- صاحبِ حېثيت- دَ ډېرو پېسو او مال حال خاوند- (م- فارسي)-

سرمايه داري:(سَر-ما-يه-دا-ري)اسم- واحد- مؤنث- پانګه والي- شتۀ مني-

سرماني:(سر-ما-ني)اسمِ صفت- توربخن- تور رنګ ته نزدې رنګ- پيکه تور رنګ- سرمه ئي-

سرمبلے:(سه-رم-به-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوږونو يو پسول- ډېډه-

سرمچے:(سر-م-چے)اسم- واحد- مذکر- سلائي- دَ سترګو تورولو سلائي-

سرمد:(سر-مد)اسم- همېشګي- دائمي- تل- (م- فارسي)-

سرمرده:(سر-مر-ده)اسم- واحد- مؤنث- هغه جرګه چې پۀ يو کلي کښې دَ ولې کنستلو دَ پاره غوره کړے شوې وي- تړ-

سرمردي:(سَر-مَر-دي)اسم- واحد- مؤنث- هغه پېسې چې دَ يو علاقې پۀ مشترکه فلاحي کار کښې پخپله دَ کار نۀ کولو پۀ وجه يو مزدور ته ورکولے شي-

سرمست:(سَر-مَست)اسمِ صفت- هغه څوک چې دَ څۀ نشې لۀ کبله دد بد وي او پۀ خان نۀ پوهېږي-

سرمشق:(سر-مشق)اسم- واحد- مذکر- نمونه- درس- مثال- پټې- (م- فارسي)-

سرمغزن:(سَر-مَغ-زن)اسمِ صفت- چټې خبرې کونکے- فضول غږېدونکے-

سرمغزن توب:(سَر-مَغ-زَن-توب)اسم- واحد- مذکر- چټې خبرې- بکواس- عبث خبرې-

سرمغزن تيا:(سَر-مَغ-زَن-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سرمغزن توب-

سرمغزنه:(سَر-مَغ-زۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې ډېره ونيږي-

سرمغزني:(سَر-مَغ-زۀ-ني)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سرمغزن توب-

سرمل:(سر-مل)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ازغے- يو قسم واښۀ-

سرمه:(سُر-مه)اسم- واحد- مؤنث- رانجۀ- کجل- دَ سترګو تورولو يو قسم تور پوډر-

سُرنا:(سُر-نا)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم دَ موسيقي آله چې دَ بيم پۀ شان آواز کوي- سرني- سرڼا-

سرناچي:(سُر-نا-چي)اسمِ صفت- سُرنا غږونکے- جمع سرناچيان-

سرناک:(سَر-ناک)اسمِ صفت- خونده ور او خوږ-

سرنامه:(سَر-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ خط ابتدائي حصه- (۲)مقدمه- عنوان- (م- فارسي)-

سرنائ:(سر-نا-ئ)اسمِ صفت- سُرناچي- سُرنا غږونکے- (۲- اسم)توري- سُرنا-

سرنجه:(س-رَن-جه)اسم- واحد- مؤنث- شړوم- دَ ويلي شوو کچو خيرے چې دَ لوښي بېخ کښې پاتې شي- سرونجه- تروپه- سپېلوغ- خټ بېره-

سرنده:(س-رن-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سرينده-

سرنګ:(س-رنګ)اسم- واحد- مذکر- هغه سورے چې پۀ غر يا ډېرې کښې دَ لارې وېستو پۀ غرض کولے شي-

سرنګون:(سَر-ن-ګون)اسمِ صفت- ټيټ سرے- شرمنده- (م- فارسي)-

سرنو:(س-ر-نو)متعلقِ فعل- بيا دَ سره- سَر دوباره-

سرنوشت:(سَر-ن-وشت)اسم- واحد- مذکر- تقدير- قسمت- قضا- نېټه- ازل ليک- مقدر- بخت- طالع- (م- فارسي)-

سرنېزه:(سر-نې-زه)اسم- واحد- مؤنث- دَ نېزې سر- دَ نېزې څوکه- شلګه- شلګے- (م- فارسي)-

سرني:(سَر-ني)اسم- واحد- مؤنث- شپېلۍ- سرنا-

سرنيکۀ:(سر-ني-کۀ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ غور نيکۀ- دَ نيکۀ دَ نيکۀ پلار-

سرڼا:(سُر-ڼا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سُرنا-

"زبر"(غ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکونې)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ"(ډو-بې-دۀ) .

سرناچي:(سر-نا-چي)اسم صفت- سرناچي- سرنا غږونکے-

سرو:(سرو)اسم- واحد- مذکر- سروه- يو لوړ قدې ونه چې کالوسر شنه وي- نباتاتي نوم (CUPRESSUS SEMPERVIRENS)-

سرواخی:(سر-وا-خی)اسم- واحد- مؤنث- خپلواکي- خودسري- باغيتوب-

سرواخے:(سر-وا-خے)اسم صفت- خودسر- خپلواک- باغي- سرکش- سرکښ-

سرواښ:(سر-واښ)اسم- واحد- مذکر- د ويښتو نه جوړ هغه پړے چې څاروي پرې تړلے شي-

سروانده:(سر-وان-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سربانده-

سرواندے:(سر-وان-دے)اسم صفت- مخ ځرک- د پوليس يا څوکيدارانو ټولے چې څوکئ د پاره د شپې ګشت کوي-

سرواندے:(سر-وان-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پټي د ورخ خوا ته برخه- (۲)د جوړېدونکي پُل هغه برخه چې د رومبے پرې کار شروع کيږي- د پُل سر- (افغانستان)-

سرواني:(سر-وا-ني) اسم- واحد- مؤنث- يو ډول ونه چې زهرژنه او ترخه مېوه لري-

سروبی:(س-رو-بی)اسم- واحد- مؤنث- دمه- لږ آرام- ټکور- قرار-

سروبے:(س-رو-بے)اسم- واحد- مذکر- هغه زمکه چې د خوړ پۀ اُبو اول اول اُبۀ کيږي-

سروپ:(سرُوپ)متعلق فعل- بالکل- بيخي- کرسره-

سروپا:(س-رو-پا)اسم صفت- تر پښو- ټول بدن- سر نه تر پښو-

سروپائی:(س-رو-پا-ئی)اسم- د بدن ټولې جامې- سر نه تر پښو جامې- خلعت-

سروتره:(سر-وت-ره)اسم- واحد- مؤنث- موسله- مُصله- جانماز-

سروته:(سر-و-ته)اسم- واحد- مؤنث- دونکاچه- چوتره-

سروتېر:(سر-و-تېر)اسم- سر د لاندې راغرځېدنه-

سروټکه:(سر-وټ-که)اسم- واحد- مؤنث- د اور سکروټه- پۀ اور سور سکور-

سروچوبے:(سر-و-چو-بے)اسم- واحد- مذکر- سرے- شرے- شپرے- (افغانستان)-

سرود:(س-رود)اسم- واحد- مذکر- د ټنګ ټکور آواز- ساز و اواز- موسيقي-

سرودزن:(س-رود-زن)اسم صفت- سرودي-

سرودی:(س-رو-دی)اسم صفت- سرود وهونکے- سازي- مجلسي- سندرغاړے- سرودزن-

سرور:(س-رور)اسم- واحد- مذکر- خوشحالي- سُکالي- ښادي- خوښي- راحت-

سرور:(سر-ور)اسم صفت- لار ښودونکے- مشر- رهنما- رهبر-

سرورخ:(سر-ورخ)اسم- واحد- مذکر- د ولې سر- د لښتې سر- د چينې سر- سري ورخ-

سرورخے:(سر-ور-خے)اسم- (۱)سرچينه- سرچشمه- (۲)سربند- (۲)د ورخ د خلې سردانه يا ړنګے چې شګې يا نور څۀ ځيزونه پکښې غنړيږي-

سرورق:(سر-ورق)اسم- واحد- مذکر- د کتاب يا رسالې ورومبی صفحه-

سرورکائنات:(سر-و-ري-کا-ئ-نات)اسم صفت- د حضور صلی الله عليه وسلم صفتي نوم-

سروري:(سر-و-ري)اسم- واحد- مؤنث- رهبري- رهنمائي- مشري- سرپرستي-

سروزنه:(سر-وز-نه)اسم- واحد- مؤنث- د پرتوګ بړه- د پرتوغاښ اچولو ځاې-

سروړد:(سر-وړد)اسم- واحد- مذکر- بالښت- سرهانه-

سروسامان:(سر-و-سا-مان)اسم- واحد- مذکر- لوښي لرګي- مال حال- د ژوند وسائل-

سروغل:(سرو-غل)مصدر- پۀ عذابول- تر پوزې راوستل- پۀ تکليف کول- کړول- ربړول-

سروغلے:(سرو-غۀ-لے)اسم مفعول- جمع سروغلي- مؤنث سروغلې- وګورئ سروغل-

سروغن:(سرو-غن)حاصل مصدر- وګورئ سروغل-

سروغنګ:(سرو-غنګ)حاصل مصدر- وګورئ سروغل-

سروغنه:(سرو-غۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سروغل-

سروغونکے:(سرو-غون-کے)اسم فاعل- جمع سروغونکي- مؤنث سروغونکې- وګورئ سروغل-

سروغۀ:(سرو-غۀ)حاصل مصدر- وګورئ سروغل-

سروقامت:(سر-و-قا-مت)اسم صفت- سروقد- (۱)لوړدنګ- د سروې پۀ شان قد لرونکے- (۲)معشوق- (شاعري)-

سروقد:(سر-و-قد)اسم صفت- دنګ- لوړ- اوږد- وګورئ سروقامت-

سروکار:(س-رو-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)مناسبت- مطابقت- ارتباط- (۲)شغل- مشغوليت- مصروفيت- (۳)سريکار-

سروکال:(س-رو-کال)اسم- واحد- مذکر- کالوسر- ټول کال- تمام کال-

سرول:(س-ر-ول)اسم- پېټۍ- صندوق-

سرولم:(س-رو-لم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سروپا-

سرولين:(سر-و-لين)اسم صفت- د پيتلو يا مسو نه جوړ لوښے-

سرولينه:(سر-و-لي-نه)اسم- وګورئ افتابه-

سرومال:(س-رو-مال)اسم مرکب- ځان او مال- (زيات د يو بل سره غبرګ وئيلے شي)-

سروندے:(سر-ون-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پګړی- پټکے- لنګوټه- (۲)د مشک وغيره د خلې تړلو مزے-

سروول:(سرو-ول)مصدر- مښل- مروړل- تاوول- څرخول- سرويل-

سروه:(سر-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سرو-

سرويل:(سرو-يل)مصدر- مښل- شاربل- مروړل- سروول-

سرويلے:(سرو-يۀ-لے)اسم مفعول- جمع سرويلي- مؤنث سرويلې- وګورئ

سرويل-

سروين:(سرو-ين)حاصل مصدر- وګورئ سرويل-

سروينګ:(سرو-ينګ)حاصل مصدر- وګورئ سرويل-

سروينه:(سرو-يَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرويل-

سرويونکے:(سرو-يون-کے)اسم فاعل- جمع سرويونکي- مؤنث سرويونکې- وګورئ سرويل-

سروبرد:(سر-وبرد)اسم- واحد- مذکر- بالښت- تکيه- هغه کدی چې د ځملاستو په وخت تر سر لاندې کولے شي-

سروبردے:(سر-وبر-دے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سروبرد-

سروبل:(سر-وبل)اسم- واحد- مؤنث- تانبه-

سروے:(سر-وے)اسم- سورے- غار-

سروے سروے:(سر-وے-سر-وے)اسم مرکب- سورے سورے- غار غار-

سره:(س-ره)متعلق فعل- يوځائ- يو بل سره- په خپلو کښې- څخه- يو تر بله-

سره:(سره)اسم- واحد- مؤنث- بوب- بې عيبه- کره- بې نقصه (م- فارسي)-

سره:(سه-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه کيميائي او مصنوعي مواد چې د ښه فصل د پيدا کولو د پاره پټي کښې اچولے شي-

سره:(سره)اسم صفت- سور رنګ لرونکي- د سور مؤنث- وګورئ سور-

سره:(سره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لاش- مرداره- (۲)ژوبله- ټپ- (۲)د غوا وغيره بې وخته بچے غورځونه-

سرۀ:(سرۀ)اسم- جمع- (۱)سرۀ زر- يو مشهور قيمتي دهات چې کالي پترې ترې جوړولے شي- (۲)د مخ سرۀ- بنکلے والے- (۳)ډېر تاودۀ- بريان-

سرهار:(سر-هار)اسم صوت- د کتاب يا د کاپۍ د پاڼو نه پيدا کېدونکے آواز-

سرۀ باتينګې:(سرۀ-با-تينګ-ګې)اسم- جمع- مذکر- ټماټر- سرۀ بانجن- رومي بانجن-

سرۀ بانجن:(سرۀ-بان-جن)اسم- جمع- مذکر- وګورئ سرۀ باتينګې-

سرهلال:(سر-ه-لال)اسم- واحد- مذکر- د پټي يو سر او بل سر چې د يوې نه پاتې کيږي-

سرهنګان:(سر-من-ګان)اسم- جمع- منګان- د هنګ جمع- لښکر- سپاهيان-

سرهېته:(سر-هي-ته)اسم صفت- سرګردان- غم زپلے-

سرهېرے:(سر-هې-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه زړه ټوټه چې د نوي پرتوګ بدې نه اچولے شي-

سرى:(س-رى)اسم- صدقه- سرجارے-

سرى:(س-رى)اسم صفت- پټ- مخفي- سر-

سرى:(سه-رى)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم جامه يا ټوټه-

سرياني:(سر-يا-ني)اسم- واحد- مؤنث- يوه پخواني ژبه-

سريبرد:(س-رى-برد)صفت/متعلق فعل- ټول- تمام- کُل- کرسره- کلهم-

سريپ:(سريپ)صفت/متعلق فعل- د صرف عاميانه تلفظ- محض-

سريخ:(سريخ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ونه- نباتاتي نوم ابليزيا لېبک (ALBIZZIA LEBBEK)-

سري خود:(س-رى-خود)متعلق فعل- په خپل سر- د خانه- پخپله- بې مشورې-

سري خوده:(س-رى-خو-ده)اسم صفت- خپلواکه- د خپلې خوښې خاوند-

سريدست:(س-رى-دست)متعلق فعل- في الحال- سم د لاسه-

سرير:(س-رير)اسم- واحد- مذکر- شاهي ګدی- شاهي منصب- شاهي تخت- شاهي مسند- (م- فارسي)-

سريزه:(س-رى-زه)اسم- واحد- مؤنث- تمهيد- مقدمه- شروع- ديباچه-

سرين:(س-رين)اسم- واحد- مذکر- کوناټے- (فارسي)-

سريندوال:(س-ريند-وال)اسم صفت- سرينده غږونکے-

سرينده:(س-رين-ده)اسم- واحد- مؤنث- سارنګي- د موسيقي يوه آله-

سرينده مار:(س-رين-ده-مار)اسم صفت- سرينده غږونکے-

سري ورخ:(س-رى-ورخ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سرورخ-

سريه:(سر-يه)اسم- واحد- مؤنث- د نمر ځريکه- د نمر خيره- د نمر راختنه-

سريه:(سر-يه)اسم- واحد- مؤنث- هغه جنګ چې حضور صلى الله عليه و سلم پکښې پخپله نۀ وي شامل شوے-

سرې:(سرې)اسم- جمع- مؤنث- د سره جمع- وګورئ سره-

سرېدل:(سرې-دل)مصدر- لګېدل- پرېوتل-

سرېښ:(سرېښ)اسم- جمع- مذکر- سرېش- شرېش- هغه سلېښناکه ماده چې د دره ځيزونه پرې خپلو کښې يوځائ کولے شي-

سرېښناک:(سرېښ-ناک)اسم صفت- نښلېدونکے- نښلونکے- سرېښند-

سرېښند:(سرې-ښند)اسم صفت- وګورئ سرېښناک-

سرېښول:(سرې-ښه-ول)مصدر- نښلول- يوځائ کول- يو بل سره پېوست کول-

سرېښون:(سرې-ښه-ون)حاصل مصدر- وګورئ سرېښول-

سرېښونکے:(سرې-ښه-وون-کے)اسم- فاعل- جمع سرېښونکي- مؤنث سرېښونکې- وګورئ سرېښول-

سرېښونګ:(سرې-ښه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سرېښول-

سرېښونه:(سرې-ښه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرېښول-

سرېښېدل:(سرې-ښې-دل)مصدر لازم- نښلېدل- يوځائ کېدل- نښتل- يو بل سره پېوست کېدل-

سرېښېدن:(سرې-ښې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سرېښېدل-

سرېښېدنګ:(سرې-ښې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سرېښېدل-

سرېښېدنه:(سرې-ښې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سرېښېدل-

سرېښېدونکے:(سرې-ښې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سرېښېدونکي- مؤنث سرېښېدونکې- وګورئ سرېښېدل-

سرېله:(سه-رې-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سره خاوره- (۲- صفت)په

خپل سر - پهٔ خپل واک- پهٔ خپل اختيار- بې سره-

سرې:(س-رې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د ستني د پاسه هغه لرګے چې تير پرې ايښودے شي-

سرې:(سرې)اسم- واحد- مؤنث- (۱) يو قسم بوټے او د هغې ميوه- (۲)د ګل بوټے-

سرې:(س-رې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د چيلم سرخانه (ټوپي)- (۲)زين پوښ- (۳)په قلبه کښې د غوايانو بدلونه پهٔ کار کښې د مزدورانو بدلونه- (۴)د بام بلي (پرچال)-

سرے:(س-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د مضمون عنوان- (۲)مقابل- ممسر-

سړتيا:(سړ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- سوړوالے- سوړتوب-

سړڅوکه:(سړ-څو-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سړسوکه- وړه څوکه- جمع سړڅوکې-

سړزي:(سړ-زی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سړدی- يخني- يخني- موسم- سا‌ړهٔ- د ګرمۍ ضد- (۲)زکام-

سړسوکه:(سړ-سو-که)اسم- واحد- مؤنث- سړڅوکه- وړه څوکه- نوے تنکے غندل- غټي- نوې کلی- سپړدې کلی- (د سړڅوکه بل ترآت)-

سړک:(س-ړک)اسم- واحد- مذکر- هغه لوېه اواره او پخه لاره چې موټرې لارې وغيره پرې ځی راځی-

سړوب:(س-ړوب)اسم- واحد- مذکر- پهٔ سينه کښې هغه ځاۍ چې اُبهٔ پکښې ولاړې وی- سړوبے-

سړوبے:(س-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سړوب-

سړوبے کړئ:(س-ړو-بے-ک-ړئ)اسم مرکب- هغه کړئ (منګے) چې اُبهٔ ې يخې وی- (افغانستان)-

سړوپ:(سړوپ)متعلق فعل- سړوپ- بالکل- بيخي- ګړد- ګړد- ټول- پهٔ جمع-

سړومې:(سړ-وړ-مے)اسم صفت- سوړبويه- خراب بوئ کونکے- پړسن-

سړوکی:(س-ړو-کی)اسم- واحد- مؤنث- د ونې سر-

سړول:(س-ره-ول)مصدر متعدی- (۱)يخول- (۲)مړکول-

سړون:(س-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ سړول-

سړونکے:(س-ره-وون-کے)اسم فاعل- جمع سړونکی- مؤنث سړونکې- وګورئ سړول-

سړونګ:(س-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سړول-

سړونه:(س-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سړول-

سړوهٔ:(س-ره-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سړول-

سړه:(س-ره)اسم صفت- د سوړ مؤنث- وګورئ سوړ-

سړه تبه:(س-ره-تهٔ-به)اسم- واحد- مؤنث- سړه لړې- يوه تبه چې يخني ورسره ډېره زياته وی-

سړه توده:(س-ره-تو-ده)اسم- مؤنث- (۱)تکليف او آرام- سخته نرمه- غم او ښادی- (۲)د ماشومانو يو قسم لوبه- (افغانستان)-

سړه خله:(س-ره-خلهٔ)اسم صفت- يخه خله- مړ- مړے- مړ شوے-

سړه خوا:(س-ره-خوا)اسم صفت- (۱)سړه او يخه علاقه- سړه سيمه- (۲)يخ مزاجه-

سړه ساه:(س-ره-ساه)اسم- واحد- مذکر- (۱)اسويلے- سوړ اسويلے- (۲)زغم- حوصله-

سړه سمخه:(س-ره-س-مهٔ-خه)اسم- واحد- مؤنث- چُپتيا- چوپه چپيا- خاموشي- سړه سمواتي-

سړه سمواتي:(س-ره-س-م-وا-تي)اسم- واحد- مؤنث- چپه چوپيا- مکمل خاموشي- وګورئ سړه سمخه-

سړه سيمه:(س-ره-سی-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ د "سړه خوا" اوله معنی-

سړه سينه:(س-ره-سی-نه)اسم- واحد- مؤنث- بې غمی- سوړ زړهٔ- لاپرواهی-

سړه ککړه:(س-ره-که-کهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- بيخی يخه- يخه پخه-

سړه کی:(س-ره-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ونې څوکه- (۲)د غر څوکه-

سړه لړې:(س-ره-لهٔ-ړې)اسم- مؤنث- سړه لوې- هغه تبه چې مريض د يخی لهٔ کبله ګرګوزې وهی- سړه لوه-

سړه لوه:(س-ره-لهٔ-وه)اسم- واحد- مؤنث- هغه تبه چې بدن پکښې د يخنی نه رپې- سړه لړې-

سړه لوې:(س-ره-لهٔ-وې)اسم- مؤنث- وګورئ سړه لړې-

سړه وچه:(س-ره-وُ-چه)اسم صفت- پاتې شوې- د څو ورځو-

سړيتوب:(س-ړی-توب)اسم- واحد- مذکر- سړی موښ- (۱)انسانيت- (۲)ښهٔ اخلاق- ښهٔ کردار- تهذيب-

سړيخور:(س-ړی-خور)اسم صفت- (۱)د انسان غوښه خوړونکے- آدم خور- (۲)حريص- حرص- ظالم-

سړی سر:(س-ړی-سر)اسم- برابر- مساوی- د تن پهٔ سر يو- يو برابر- يو شان-

سړی موښ:(س-ړی-موښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سړيتوب-

سړې تودې:(س-ړې-تو-دې)اسم مرکب- سختې نرمې- ګرمۍ نرمې- تاوده سا‌ړهٔ-

سړېچن:(س-ړې-چن)اسم صفت- هغه ځوک چې ډېره يخني ې کيږی- يخ زنے-

سړېدل:(س-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)يخېدل- (۲)پهٔ غصه قابو کېدل- (۳)مړهٔ کېدل-

سړېدن:(س-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سړېدل-

سړېدنګ:(س-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سړېدل-

سړېدنه:(س-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سړېدل-

سړېدونکے:(س-ړې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سړېدونکی- مؤنث سړېدونکې- وګورئ سړېدل-

سړېدهٔ:(س-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سړېدل-

ئ (ښي-رل)، ي (مې-ره-ول)، ى (پيا-لې)، ې (تن-دې) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

سړے:(سَ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)نر بنیادم- نر انسان- (۲)نوکر- خدمتګار- (۲)مېړۀ- خاوند-

سزا:(سَ-زا)اسم- واحد- مؤنث- جزا- دَ بدی بدله- بدل- عوَض- انړول- مداد- (م- فارسی)-

سزاوار:(سَ-زا-وار)اسم صفت- دَ سزا قابل- دَ سزا لائق- دَ سزا جوګه-

سزاول:(سَ-زا-وَل)اسم- واحد- مذکر- پټواری- هغه کس چې محصول یا مالیه ټولوی-

سزنی:(سز-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سخنی/سیزنی-

سږ:(سږ)اسم صوت- دَ ټوپک دَ ګولی اواز- سر- سغ-

سږه:(سه-ږه)اسم- واحد- مؤنث- سرږه- ښخه- شخه-

سر:(سر)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرکال- سخکال- روان کال- جاری کال- (۲)وګورئ سږ-

سرار:(سۀ-رار)اسم صوت- وګورئ سرهار-

سرکال:(سر-کال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سر-

سرمور:(سر-مه-ور)اسم صفت- وګورئ سپېرمور-

سرمه:(سر-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سپېرمه-

سرمه:(سر-مه)اسم- واحد- مؤنث- سرمی- تمبیرے- دَ مخ مهوکے- دَ مخ تمبیرے- جمع سرمې-

سرمی:(سر-می)اسم- جمع- مذکر- سرمه- شرمه- تمبیړے- دَ مخ تمبیړے-

سرنے:(سَ-رَ-نے)اسم صفت- دَ دی کال- دَ موجوده کال- دَ سخکال سره متعلق-

سرنے کال:(سَ-رَ-نے-کال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سرکال-

سرهار:(سر-هار)اسم صوت- دَ ټوپک دَ ګولیو پرله پسې آواز- سرار-

سرے:(سۀ-رے)اسم- واحد- مذکر- پرپوس-

سسپار:(سَس-پار)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې پاله- دَ یوې تبېشی- سَسپاره- کرکی-

سسپاره:(سَس-پا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سسپار-

سسپر:(سَس-پر)اسم- واحد- مذکر- کودالی- سخسوره- کشی- سسکوره- تسکوره- سسپور- سَسپوره-

سسپور:(سس-پور)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سسپر-

سسپوره:(سس-پو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سَسکوره/سسپر-

سست:(سُست)اسم صفت- (۱)ناراسته- کاهل- لټ- (۲)دَ کلک ضد- سست پست-

سست:(سست)اسم صفت- مفعول- کونی-

سست پست:(سُست-پست)اسم صفت- وګورئ سست-

سستوالے:(سُست-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناراستی،کاهلی- لټوالے- (۲)کونی توب-

سستول:(سَس-ته-وَل)مصدر متعدی- (۱)ناراسته کول- بېکاره کول- (۲)نرمول- اَسانول- ارتول- شلمول-

سستول:(سَس-ته-وَل)مصدر متعدی- کونی کول-

سستون:(سُس-ته-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سستول-

سستونکے:(سُس-ته-وون-کے)اسم فاعل- جمع سستونکی- مؤنث سستونکې- وګورئ سستول-

سستونګ:(سُس-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سستول-

سستونه:(سُس-ته-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سستول-

سسته:(سَس-ته)اسم صفت- دَ سَست مؤنث-

سسته:(سُس-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پیل- (۲)کمزوری- (۲)دَ سُست مؤنث-

سستی:(سُس-تی)اسم- واحد- مؤنث- ناراستی- کاهلی- کمزوری- لټوالے-

سستی:(سَس-تی)اسم- واحد- مؤنث- مفعولیت- کونی والے- کونی توب-

سستیا:(سُس-تیا)اسم- واحد- مؤنث- ناراستی- سستی- کاهلی-

سستېدل:(سُس-تې-دَل)مصدر لازم- (۱)ناراسته کېدل- (۲)پرانستے کېدل- شلمېدل- (۳)کمزورے کېدل-

سستېدل:(سَس-تې-دل)مصدر لازم- کونی کېدل-

سستېدن:(سُس-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سستېدل-

سستېدنګ:(سُس-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سستېدل-

سستېدنه:(سُس-تې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سستېدل-

سستېدونکے:(سُس-تې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سستېدونکی- مؤنث سستېدونکې- وګورئ سستېدل-

سستېدۀ:(سُس-تې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ سستېدل-

سسکوره:(سَس-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- کدالی- سبکوره- دَ اُسپنې او لرګی هغه آله چې زمکه پرې کنستے شی-

سسے:(سۀ-سے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بې ازغیو غرنیز بوټے چې د سوزولو دَ پاره پکارولے شی- سوسے-

سشکله:(سش-کۀ-له)متعلق فعل- ښشکله- مېخ کله- مېچرې- تل- کله چې هغه وخت-

سبا:(سۀ-بنا)اسم صوت- سبهار- دَ اُبو دَ یشېدو آواز-

سبسوره:(سَبښ-سو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سسکوره-

سبکوره:(سَبښ-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سسکوره-

سطح:(سَ-طح)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سطحه- مخ- استر- دَ څۀ څیز برنی حصه- (۲)هر هغه څۀ چې طول او عرض لری- (م- عربی)-

سطحی:(سَط-حی)اسم صفت- (۱)دَ سطحې سره متعلق- (۲)سرسری- (۳)علاقائی- (م- عربی)-

سطر:(سه-طر)اسم- واحد- مذکر- (۱)لیکه- کیله- کرښه- کرله- (۲)فقره- دَ لیک یوه کرښه- (م- عربی)-

سطرنج:(سط-رنج)اسم- واحد- مذکر- شطرنج- یوه لوبه- (م- فارسی)-

زبر (ځ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زبر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ہ (ز-ره)، ۀ (پو-بې-دۀ)

سطور:(سُ-طُور)اسم- جمع- مذکر- دَ سطر جمع- وګورئ سطر-

سعادت:(س-عا-دت)اسم- واحد- مذکر- نېک بختي- نېک مرغي- خوش بختي- اقبال مندي- ښادمني- ښاغلتيا- (م- عربي)-

سعادتمند:(سَ-عا-دت-مَند)اسم صفت- نېک بخته- نېک مرغه-

سعادتمندي:(سَ-عا-دَت-مَن-دي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سعادت-

سعادتمني:(سَ-عا-دَت-مه-ني)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سعادت-

سعد:(سَ-عد)اسم- واحد- مذکر- نېک- مبارک- ښهٔ- پاک- دَ نجس ضد- (م- عربي)-

سعد اکبر:(سَ-عَد-اک-بر)اسم- واحد- مذکر- مرغ ستورے- مشتري- يوه سياره چې ډېره مبارکه ګڼلے شي-

سعدين:(سَع-دِين)اسم- جمع- مذکر- دوه مبارکې سيارې چې دَ يو نوم زهره او دَ بلې مشتري دے-

سعي:(سَ-عي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جدوجهد- کوشش- خواري- محنت- (۲)کار- عمل- (۳)دَ حج دوران کښې دَ صفا او مروا غرونو تر مېنځه دَ څهٔ مقرره اصولو لاندې منډه وهنه- (م- عربي)-

سعيد:(سَ-عيد)اسم صفت- کجير- برخه من- نېکمرغه- خوش قسمته- نېک بخته- دَ شقي ضد- (م- عربي)-

سعير:(سَ-عير)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوزخ- (۲)دوزخي طبقه- (م- عربي)-

سعيه:(سَع-يه)اسم- وګورئ سعي-

سغ:(سَغ)اسم صوت- دَ ټوپک تماچې دَ ګوليو وېستو آواز- دَ ټوپک دَ ګولۍ اواز- سغا- سغکے-

سغا:(سهٔ-غا)اسم صوت- وګورئ سغ-

سغاو:(س-غاؤ)اسم- واحد- مذکر- دَ کېو بيزو يو مرض چې پوزه يې پکښې بنديږي-

سغکے:(سَغ-کے)اسم صوت- (۱)وګورئ سغ- (۲)دَ بندې پوزې آواز-

سغل:(سَ-غَل)اسم- واحد- مذکر- دَ بدهضمۍ ناروغي-

سغندے:(سهٔ-غن-دے)اسم- پوچه خبره- بې خونده خبره-

سغول:(سهٔ-غُ-وَل)مصدر متعدي- دَ لاس پهٔ مدد سره کاڼے وغېره پهٔ زوره ارتاوول- شغول- پهٔ ټوپک ګولۍ وِيشتل-

سغولے:(سهٔ-غُ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سغولي- مؤنث سغولې- وګورئ سغول-

سغون:(سهٔ-غُ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سغول-

سغونکے:(سهٔ-غُ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سغونکي- مؤنث سغونکې- وګورئ سغول-

سغونګ:(سهٔ-غُ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سغول-

سغونه:(سهٔ-غُ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سغول-

سغوهٔ:(سهٔ-غُ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سغول-

سغهار:(سَغ-هار)اسم صوت- وګورئ سغ-

سغېدل:(سهٔ-غې-دَل)مصدر لازم- دَ لاس پهٔ مدد سره کاڼے وغېره پهٔ زور سره ارتاوېدل- شغېدل-

سغېدلے:(سهٔ-غې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سغېدلي- مؤنث سغېدلې- وګورئ سغېدل-

سغېدن:(سهٔ-غې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سغېدل-

سغېدنګ:(سهٔ-غې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سغېدل-

سغېدنه:(سهٔ-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سغېدل-

سغېدونکے:(سهٔ-غې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع سغېدونکي- مؤنث سغېدونکې- وګورئ سغېدل-

سغېدهٔ:(سهٔ-غې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سغېدل-

سف:(سف)اسم- واحد- مذکر- ورغوے- کف-

سفارت:(س-فا-رَت)اسم- واحد- مذکر- دَ سفير عمله چې صُلحې صفايي او دوستانه تعلقاتو جوړولو پهٔ غرض دَ يو سلطنت نه بل سلطنت ته ځي- استاځي- (م- عربي)-

سفارتخانه:(س-فا-رت-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ بل ملک کښې دَ سفير دفتر او استوګې ځاې-

سفارش:(س-فا-رِش)اسم- واحد- مذکر- شفاعت- سعي- سپارښتنه- سپارښت- سفارښ-

سفارشي:(س-فا-رِ-شي)اسم صفت- سفارش کونکے-

سفارښ:(س-فا-رِښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سفارش-

سفارښت:(س-فا-رِښت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سفارش-

سفاک:(سَ-فاک/سَف-فاک)اسم صفت- خون کونکے- وينه تويونکے- خوني- قاتل- خونړے- بې رحمه-

سفاکي:(س-فا-کي)اسم- واحد- مؤنث- خونريزي- بې دردي- بې رحمي- دَ انسانو دَ وينو تويولو عمل-

سفر:(سَ-فَر)اسم- واحد- مذکر- مسافرت- سياحت- دَ يو ځاې نه بل ځاې ته تلنه- يون- (م- عربي)-

سفربري:(سَ-فر-بَ-ري)اسم- واحد- مؤنث- دَ سفر تابيا کونه- سفر ته تياري کونه-

سفرخرڅ:(سَ-فَر-خَرڅ)اسم- واحد- مذکر- زاد راه- دَ سفر دوران کښې صرف کېدونکې روپۍ پېسې- څورے- سفريه-

سفرنامه:(سَ-فَر-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سفر باره کښې هغه ليک چې دَ خپل سفر يا دَ بل چا دَ سفر دَ سترګو ليدلے حال پکښې قلمبند کړے شي- يون ليک-

سفرمېنا:(سَ-فَر-مے-نا)اسم- واحد- مؤنث- هغه دسته چې دَ سُرنګ جوړولو دَ پاره مقرر کړے شي-

سفره:(سُف-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دسترخوان- (۲)توشه دان- شخولے- (م- فارسي)-

ځ" (ځې-رل)، "ې" (هې-ره-وَل)، "ئ" (پيا-لي)، "ے" (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

سفري:(سَ-فَ-ري)اسم صفت- مسافرۍ سفر کونکے- روان- (م- فارسي)-

سفريه:(س-فَ-ري-يه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سفرخرڅ- (افغانستان)-

سفله:(سِف-له)اسم صفت- کمينه- رذيل- (م- عربي)-

سُفلي:(سُف-لي)اسم صفت- (۱)د کمې درجې- ناقص- د اعلی ضد- (۲)ډېر ښکته- ډېر ټيټ- د لاندې-

سفوف:(سُ-فوف)اسم صفت- ميده- رش- پوډر- (م- عربي)-

سفير:(سَ-فير)اسم- واحد- مذکر- ايلچي- هغه سړے چې د صلحې صفايي او دوستانه تعلقاتو جوړولو په غرض د خپل ملک له خوا سرکاري طور بل ملک کښې ډېره وي- استاځے- (م- عربي)-

سفينه:(سَ-في-نه)اسم- واحد- مؤنث- کشتي- بېړۍ-

سفيه:(سَ-في-يه)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- بې وقوف- احمق- کم عقل- (م- عربي)-

سفېد:(سَ-فېد)اسم صفت- سپين- د تور ضد- (م- فارسي)-

سفېدي:(س-فې-دي)اسم- وګورئ اخېړ-

سفېدار:(س-فې-دار)اسم- جمع- مذکر- وګورئ سپېدار- نباتاتي نوم -(POPULUS ALBA-L)

سفېده:(س-فې-ده)اسم- واحد- مؤنث- سپېده- سفېدار-

سقا:(سَ-قا)اسم- واحد- مذکر- (۱)مشک- (۲- صفت)مشکي- مشکي وال- سقاؤ- ابے- ابۀ ور-

سقال:(س-قال)اسم- واحد- مذکر- ږيره-

سقاؤ:(سَ-قاؤ)اسم صفت- مشکي- بهشتي- د مشک کار کونکے- د بلديو له خوا د چِنګاؤ کار کونکے-

سقاوه:(س-قا-وه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځاے چې پکښې ډېرې اوبۀ وي- غسل خانه- لمبو ځاے- چړچوبي- (م- عربي)-

سقر:(سَ-قَر)اسم- واحد- مذکر- دوزخ- جهنم- دوغس- اورګر- (م- عربي)-

سقراط:(سُق-راط)اسم- واحد- مذکر- د يونان يو مشهور فلسفي-

سقط:(سُ-قَط)اسم- واحد- مذکر- (۱)بې ګټې او عبث څيز- (۲)رسوائي- (۲)په وينا يا ليک کښې غلطي-

سقط:(سقط)اسم- واحد- مذکر- د څوپايو مړۀ کېدنه- زيانېدنه- نقصانېدنه- (م- عربي)-

سقف:(س-قف)اسم- واحد- مذکر- چت- د کوټې د آبادۍ برنۍ حصه- (م- عربي)-

سقم:(سُ-قم)اسم- واحد- مذکر- عيب- نقص- خرابي- (م- عربي)-

سقنقور:(سَ-قن-قور)اسم- واحد- مذکر- د سمسرې غندې يو کب- شګ مهے- شګ کب- (م- عربي)-

سقوط:(سُ-قوط)متعلق فعل- (۱)غرځېدنه- غوزارېدنه- (۲)انزال کېدنه- خلاصېدنه- (م- عربي)-

سقوطري:(س-قو-طري)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم ډېره ترخه دوائي-

سقيم:(سَ-قيم)اسم صفت- ناقص- بيمار- مريض- ناجوړه- (م- عربي)-

سک:(سک)اسم- واحد- مذکر- (۱)بربښ- د ملا درد- په ملا کښې ځړيکه راتلنه- خوږ- ځړيکه- (۲- اسم صوت)د ژړا سلګۍ- د ژړا اټکې-

سکاځے:(س-کا-ځے)اسم- بخې- ګارې-

سکاروے:(سکار-وے)اسم- واحد- مذکر- يو مرض چې پکښې د سينې دننه پرده پړسيږي- نمونيا-

سکاره:(سکا-رۀ)اسم- جمع- مذکر- د سکور جمع- د لرګيو سوزولو نه پس په اوبو مړې کړے شوې سکروټې چې عام طور په انګيټۍ کښې استعمالولے شي-

سکاسه:(سکا-سه)اسم- واحد- مؤنث- خيالي بلا- بلا-

سکال:(س-کال)اسم- واحد- مذکر- سخکال- سکالې- سر- سرنے کال-

سکالوی:(سکال-وی)اسم- واحد/جمع- مذکر- زبيرګۍ-

سکالو:(سکا-لو)اسم- واحد- مؤنث- ښکالو- په خاموشۍ کښې د چا د خبرو يا د پښو آواز-

سکالي:(س-کا-لي)اسم- واحد- مؤنث- خوشحالي- اسودګي- اطمينان-

سکان:(سکان)اسم- واحد- مذکر- سکڼ- سکاڼ- (۱)توروبره- توربخن- کلوټ- (۲)ښکلے توربخن-

سکاڼ:(سکاڼ)اسم صفت- سکڼ- سکان-

سکته:(سک-ته)اسم- واحد- مؤنث- وقفه- ځنډ- معطلي-

سکټ:(سکټ)متعلق فعل- بالکل- بيخي- مکمل- صفا- لکه سکټ انکار-

سکر:(سُ-کر/سُکر)اسم- واحد- مذکر- نشه- بې هوشي- د شرابو څښلو له کبله مستي- (م- عربي)-

سکرات:(س-ک-رات)اسم- واحد- مذکر- ځنکدن- د مرګ سختي- د مرينې اخري سلګۍ- (م- عربي)-

سکرنډي:(سکه-رن-ډي)اسم- واحد- مؤنث- د ميزرۍ د بوټي د بېخ غټه- غټه- ستغ-

سکروټه:(سکر-و-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سروټکه-

سکرک:(سک-رک)اسم- مذکر- سوکړک- ډيډيے-

سکړک:(سک-ړک)اسم صفت- خراب- وران- په بد حال-

سک سک:(سک-سک)اسم- غوائي ته په غوا د ختو د پاره د آماده کولو کلمه- ډيو ډيو-

سکښت:(سکښت)اسم- واحد- مذکر- (۱)پرېکړه- په قېنچي قطع کونه- (۲)ګنډ- ګنډنه-

سکښتل:(سکښ-تل)مصدر- په قېنچي کپړه يا کاغذ پرېکول- (۲)ګنډل- ګنډه کول-

سکښتن:(سکښ-تن)حاصل مصدر- وګورئ سکښتل-

سکښتنګ:(سکښ-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ سکښتل-

سکښتنه:(سکښ-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سکښتل-

زبر (غ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېښ (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکوڼ)، ۀ (ژ-ړه)، ۀ (ډو-بې-دۀ)

سکښتونکے:(سکښ-تون-کے)اسمِ فاعل- جمع سکښتونکی- مؤنث سکښتونکې- وګورئ سکښتل-

سکښته:(سکښ-ته)اسم- قینچی شوې ټوټه- غچی شوے ټوکر-

سکښتے:(سکښ-تے)اسمِ صفت- (۱)قطع شوے- پرېکړے شوے- قینچی شوے- (۲)ګنډلے-

سکم:(سکم)اسم- واحد- مذکر- برغوني بوری- غوندے- غبرګه بوری-

سکـنجبین:(سکن-ج-بین)اسم- واحد- مذکر- دَ لیمو یا سرکې شربت- شکنجبین- (م- فارسی)-

سکـنجه:(سکن-جه)اسم- واحد- مؤنث- ګرفت- پنجه- شکنجه- دَ کتاب ترلو یوه آله-

سکـنے:(سکه-نے)اسم- واحد- مذکر- ډېډه- برغوړے- سرمبلے- دَ غوړونو پسول-

سکـنے:(س-که-نے)اسم- واحد- مذکر- حقیقی- سکه-

سکڼ:(سکڼ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- توربخن خو خوش شکله (بنیادم)-

سکڼ:(سکڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پرېکړه- پهٔ قینچی پرېکړه- (۲)ګنډ- کنډنه- ګینده کونه-

سکـڼل:(سکه-ڼل)مصدرِ متعدی- (۱)پهٔ بیاتی پرېکول- قطع کول- (۲)ګنډل- ګینده کول-

سکڼلے:(سکه-ڼهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع سکڼلی- مؤنث سکڼلې- وګورئ سکڼل-

سکـڼنه:(سکه-ڼهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سکڼل-

سکـڼودل:(سکه-ڼو-دل)مصدر- وګورئ سکـڼل-

سکـڼونکے:(سکه-ڼون-کے)اسمِ فاعل- جمع سکـڼونکی- مؤنث سکـڼونکې- وګورئ سکـڼل-

سکـڼې:(سکه-ڼې)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- (۱)دَ غوړونو والی- سکنے- (۲)دَ روپو پیپلے شوے امېل-

سکڼے:(سکه-ڼے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېوے- (۲)وګورئ سکڼ-

سکو:(سکو)اسم- (۱)ګنډنه- سکـڼودنه- (۲)کاسه ګرب- کشب- (۳)ښاخې- درې ښاخې-

سکو:(س-کو)اسم- (۱)دَ ډېرو چوکی، چونتره- صفه- (۲)سرخلاصې ډبه-

سکوت:(س-کوت)اسم- واحد- مذکر- خاموشی- قلاری- چپه چپیا-

سکوت:(سکوت)صفت- ټول- کل-

سکور:(سکور)اسم- واحد- مذکر- (۱)مړه شوې سکروټکه- دَ سکارهٔ واحد- (۲)شکور-

سکوستل:(سکوس-تل)مصدر- وګورئ سکول ۲-

سکوستن:(سکوس-تن)حاصلِ مصدر- وګورئ سکوستل-

سکوستنګ:(سکوس-تنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سکوستل-

سکوستـنه:(سکوس-تهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سکوستل-

سکوستـونکے:(سکوس-تون-کے)اسمِ فاعل- جمع سکوستونکی- مؤنث سکوستونکې- وګورئ سکوستل-

سکوستهٔ:(سکوس-تهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ سکوستل-

سکوستے:(سکوس-تے)اسمِ صفت- سکڼلے- سکـڼودلے- سکښتے-

سکول:(سکول)اسم- واحد- مذکر- مکتب- دَ اول جماعت نه تر لسمه جماعته پورې دَ زدکړې ځاې-

سکول:(سکه-ول)مصدر- دَ ګډو بیزو وېښتهٔ قینچی کول- دَ ګډو بیزو وړی غځول-

سکول:(سکول)اسم- واحد- مذکر- ټال- پهٔ ونه کښې دَ پړی نه جوړ ټال-

سکولګر:(سکول-ګر)اسمِ صفت- مغه سړے چې دَ ګډو بیزو نه وېښتهٔ سکنی-

سکولل:(سکو-لل)مصدر- دَ ګډو بیزو نه وړی قینچی کول-

سکوللے:(سکو-لهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع سکوللی- مؤنث سکوللې- وګورئ سکولل-

سکولنه:(سکو-لهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سکولل-

سکولونکے:(سکو-لون-کے)اسمِ فاعل- جمع سکولونکی- مؤنث سکولونکې- وګورئ سکولل-

سکولهٔ:(سکو-لهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ سکولل-

سکولے:(سکه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع سکولی- مؤنث سکولې- وګورئ سکول۲-

سکون:(سکه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ سکول۲-

سکـون:(س-کون)اسم- واحد- مذکر- (۱)آرام- راحت- خوشحالی- (۲)نهٔ خوځېدنه- دَ حرکت ضد-

سکونت:(س-کو-نت)اسم- واحد- مذکر- استوګه- استوګـنه- وُسېدنه- ژوند تېرونه-

سکونډاره:(سکون-ډا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ څکونډاره-

سکـونـډل:(سکـون-ډل)مـصـدرِ مـتـعـدی- څـکـونـډل- سـکـونـډارې لـګـول- نوکارې لګول- زوړول-

سکونډن:(سکون-ډن)حاصلِ مصدر- وګورئ سکونډل-

سکونډنګ:(سکون-ډنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سکونډل-

سکونډنه:(سکون-ډهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سکونډل-

سکـونـډونکے:(سکـون-ډون-کے)اسمِ فـاعل- جـمع سـکـونـډونکی- مؤنث سکونډونکې- وګورئ سکونډل-

سکونډه:(سکون-ډه)اسم- واحد- مؤنث- څکونډاره- سکونډاره- نوکاره-

سکونډهٔ:(سکون-ډهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ سکونډل-

سکونکے:(سکه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع سکونکی- مؤنث سکونکې- وګورئ سکول۲-

سکونګ:(سکه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سکول۲-

سکونه:(سکه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سکول۲-

سکونے:(سکه-ؤ-نے)اسم- واحد- مذکر- نخې- ګینده-

"ئ" (ځی-رل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

سکویل:(سکو-یل)مصدر- (۱)گډې بېزې قینچی کول- (۲)رېزه رېزه کول- (۳)گرول-

سکویلے:(سکو-یهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سکویلی- مؤنث سکویلې- وگورئ سکویل-

سکوین:(سکو-ین)حاصل مصدر- وگورئ سکویل-

سکوینگ:(سکو-ینگ)حاصل مصدر- وگورئ سکویل-

سکوینه:(سکو-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وگورئ سکویل-

سکویونکے:(سکو-یون-کے)اسم فاعل- جمع سکویونکی- مؤنث سکویونکې- وگورئ سکویل-

سکویهٔ:(سکو-یهٔ)حاصل مصدر- وگورئ سکویل-

سکوی:(سکوی)اسم- گنډنه- پهٔ کپړه یا څادر بوټی کونه-

سکوے:(سکهٔ-وے)اسم صفت- واحد- مذکر- درزی- گنډل کونکے- سکونکے- خیاط-

سکه:(س-که)اسم صفت- دَ یو مور او یو پلار اولاد- حقیقی-

سکه:(س-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ دهات نه جوړه یوه سرکاری روپۍ- پېسه چې دَ یو مخصوصې سرکاری نښې پهٔ وجه یې پېژندګلو کیږی- جمع سکې-

سکه:(سهٔ-که/سکه)متعلق فعل- وگورئ ځکه- (متروک)-

سکی:(س-کی)اسم- حباب- بربوکی-

سکچ:(سکچ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې زیړ گل کوی او کجل ترې جوړولے شي- (افغانستان)-

سکیم:(سکیم)اسم- (۱)جوال- (۲)منصوبه-

سکیندل:(سکین-دل)مصدر- ساه لوړېدل- اوږده کېدل- پهٔ سکیندو سکیندو ساه اخستل-

سکیندلے:(سکین-دهٔ-لے) اسم مفعول- جمع سکیندلی- مؤنث سکیندلې- وگورئ سکیندل-

سکیندن:(سکین-دن)حاصل مصدر- وگورئ سکیندل-

سکیندنگ:(سکین-دنگ)حاصل مصدر- وگورئ سکیندل-

سکیندونکے:(سکین-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سکیندونکی- مؤنث سکیندونکې- وگورئ سکیندل-

سکیندنه:(سکین-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وگورئ سکیندل-

سکینده:(سکین-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ مات مړوکی چچه- (۲)تسکین-

سکینه:(سه-کی-نه)اسم- دَ زړهٔ آرام- دَ زړهٔ سکون- دَ زړهٔ دمه-

سکېدل:(س-کې-دل)مصدر- غونښېدل- خڅکېدل- لکه دَ سپړو وروړ پهٔ جامو کښې ورو ورو خوزېدل-

سکېر:(س-کېر)اسم- واحد- مذکر- سکور- سکارهٔ-

سکېگر:(س-کې-گر)اسم- دستکار- استکار- هغه څوک چې څهٔ هنر یې زده وی-

سکېلونے:(سکې-لو-نے)اسم- واحد- مذکر- زوبرگے- زبېرگے- فریاد کونه- سکېلوے-

سکېلوے:(سکېل-وے)اسم- (۱)زبېرگے- فریاد- سکېلونے- (۲)تال- لگن-

سکېلے:(سکې-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ وړو مرغیو نیولو یو قسم جال یا لومه-

سکی:(سکی)اسم- واحد- مؤنث- ښاخې-

سکے:(س-کے)اسم- پیکل- سکه- تناو-

سگ:(سگ)اسم- واحد- مذکر- سپے-

سگار:(س-گار)اسم- واحد- مذکر- دَ عام سگرټ نه اوږد او غټ سگرټ چې تماکو پکښې څښلے شي-

سگال:(س-گال)اسم- واحد- مذکر- قیاس- گومان- اندازه- جاج- (م- فارسی)-

سگرټ:(سگ-رټ)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ کاغذ نچه چې دَ تماکو نه ډکه وی او خلق یې دَ نشې پهٔ توگه څښی-

سگرټ دانی:(سگ-رټ-دا-نی)اسم- واحد- مؤنث- هغه لوښے چې دَ سگرټ ایره او آخری غرڅونکی حصه پکښې غُرځولے شي-

سگرټی:(سگ-رهٔ-ټی)اسم صفت- دَ سگرټو څښلو عادی- سگرټ څښونکے-

سگل:(س-گل)اسم- واحد- مذکر- یو قسم دَ لوړو پوندو بوټان چې دَ کچه څرمنې نه جوړ وی او دَ غرونو ختلو پهٔ وخت پهٔ پښو کولے شي-

سگلاوو:(سگ-لا-وو)اسم- واحد- مذکر- سگلاهو- یو قسم دَ اَبو ځناور چې دَ کیډر مومره وی-

سگلاهو:(سگ-لا-هو)اسم- واحد- مذکر- وگورئ سگلاوو-

سگلی:(سگ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وگورئ سلگی-

سگلے:(سگ-لے)اسم- وگورئ څاگله-

سگ ماهی:(سگ-ما-هی)اسم- وگورئ ډیولا-

سگ مگس:(سگ-مَ-گس)اسم- دَ سپی مچ-

سگنے:(س-گ-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ سخکال- دَ سرکال-

سگوان:(سگ-وان)اسم صفت- سپی ساتونکے- دَ سپو پالنه کونکے-

سگه:(سهٔ-گه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم غرنیزه هوسی-

سگه:(س-گه)اسم- واحد- مؤنث- پانگه- پنگه- سرمایه- ذخیره- مال و دولت-

سگهار:(سگ-هار)اسم- شهنار- سپوهار- سرهار-

سگے:(سهٔ-گے)اسم- واحد- مذکر- دَ ځناور او بنیادم دننه یو اندام- اینه- پښتورگے-

سل:(سل)اسم- جمع- پینځهٔ شلې- دَ ۹۹ او ۱۰۱ تر مېنځه عدد (۱۰۰)-

سل:(سل)اسم- واحد- مذکر- جاله- دَ کشتئ یو قسم- جمع سلونه- (م- فارسی)- (۲)پېرزوینه- خواهش- سود-

سل:(سل)اسم- واحد- مذکر- یو موذی مرض چې پرپوس پکښې زخمی شی او وینه ترې بهیږی- دِق- مړه خوړ- نرے رنځ-

سلا:(س-لا)اسم- واحد- مؤنث- صلاح- مشوره- مصلحت- خوښه-

سلابلا:(س-لا-بَ-لا)متعلق فعل- هیڅ بې هیڅه- بې سببه- ناحقه-

زبر (خ-بهٔ-ره)، زورکے (ښل)، پېښ (نو-کا-ره)، زېر (کِ-تاب)، جزم (شکون)، ة (ز-ړه)، ةٔ (یو-بې-دهٔ)

وچ پهٔ وچه-

سلاجیت:(س-لا-جیت)اسم- واحد- مذکر- دَ بعضې غرونو دَ کانونو نه حاصلېدونکې ماده چې دَ اعصابو محکمولو دارو گڼلے شي- دَ غرونو خوله-

سلاح:(س-لاح)اسم- واحد- مذکر- وسله- دَ جنگ جګړې اوزار- (م- عربی)-

سلاح خانه:(س-لاح-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وسلې دَ ساتنې او ذخیره کولو ځائې- سلاح کوټ-

سلاح کوټ:(سَ-لاح-کوټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سلاح خانه-

سلاد:(سَ-لاد)اسم- واحد/جمع- مذکر- سلات- سلاته- سلته- چکنی- چټانے- پودینه- پیاز- باټینګړ-

سلاره:(سَ-لا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سلاری-

سلاری:(سَ-لا-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سلاره- دَ زنانوؤ یو قسم ریښمین پړونے یا لوپټه-

سلاست:(س-لا-ست)اسم- واحد- مذکر- روانی- اسانی- نرمی- سادګی- پهٔ کلام یا تحریر کښې دَ ثقیلو الفاظو نه خان ژغورنه- (م- عربی)-

سلاسل:(سَ-لا-سل)اسم- جمع- مذکر- زنځیر- بېړی- هغه زنځیرونه چې دَ بندی کولو پهٔ غرض پرې سړے تړلے شي- (م- عربی)-

سلاسوم:(سَ-لا-سوم)اسم- واحد- مذکر- پیشوپړانګ- پړانګ پیش- پڼاپش-

سلاطین:(س-لا-طین)اسم- جمع- مذکر- دَ سلطان جمع- بادشاهان- شاهی خاندان-

سلاکار:(س-لا-کار)اسم صفت- مشوره ورکونکے- مشیر- صلاح کار-

سلالی:(سَ-لا-لی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سلاری-

سلام:(س-لام)اسم- واحد- مذکر- (۱)سلامتی- تعظیم- (۲)عیب نهٔ لرنه- (۲)دَ خدائې پاک یو صفتی نوم-

سلامت:(سَ-لا-مَت)اسم صفت- روغ جوړ- روغ رمټ- (۲)بې عیبه- بې وټه-

سلامتی:(سَ-لا-مَ-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)روغتیا- صحتمندی- تندرستی- (۲)بې عیبی-

سلامتیا:(سَ-لا-مَ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سلامتی-

سلام کلام:(سَ-لام-کَ-لام)اسم مرکب- علیک سلیک- دُعا سلام- سلام دُعا-

سلامی:(سَ-لا-می)اسم- واحد- مؤنث- دَ وادهٔ پهٔ شپه ناوې ته دَ خاوند لهٔ خوا ورکېدونکې تحفه- دَ وادهٔ خلمی ته دَ پالنګ ختو پهٔ وخت دَ سخرګنی لهٔ خوا ورکېدونکې پیسې-

سلانه:(س-لا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ځمځربکے-

سلائی:(س-لا-ئی)اسم- واحد- مذکر- هغه نرے ډکے چې پرې سترګو کښې رانجهٔ اچولے شي-

سلب:(سلب)اسم- پهٔ زور اخستنه- شوکونه- جدا کونه- (م- عربی)-

سل برغ:(سَل-برَغ)اسم عدد- سل غبرګه- سل چنده- سل خلې-

سل برګ:(سَل-برَګ)اسم- واحد- مذکر- یو مشهور ګل- صدبرګ- ګل مزاره-

سل بل:(سل-بل)متعلق فعل- سلا بلا سره- هر څهٔ-

سلبول:(سَل-بَ-وَل)مصدر- پهٔ زور اخستل- محرومول- شوکول-

سلبېدل:(سَل-بې-دَل)مصدر- محرومېدل- شوکېدل- جدا کېدل-

سل پهٔ سل:(سَل-پهٔ-سل)اسم مرکب- سل سل- پهٔ سلو پسې سل-

سلت:(سَ-لَت)لاحقه- دا کلمه دَ لفظ 'غلط' سره راځی او دَ غلط پهٔ معنٰی کښې زور پیدا کوی-

سلټ:(س-لټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پال- (۲)سنګر- سلټه-

سلټه:(سل-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مورچه- مورچل- سلټ- (۲)مضبوطی- استحکام-

سل چنده:(سَل-چن-ده)اسم عدد- وګورئ سل برغ-

سلح:(س-لَح)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سلاح-

سلح خانه:(سَ-لح-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سلاح خانه-

سلخ:(سَلخ)اسم- واحد- مذکر- دَ قمری میاشتې آخرنی ورځ- (م- هندی)-

سل ژبے:(سَل-ژهٔ-بے)اسم- واحد- مذکر- صدبرګ ګل- صدبرګ-

سل سل:(سَل-سل)اسم عدد- سېکړه سېکړه- پهٔ شماره کښې دَ سلو سلو پهٔ ځائې پکاریږی-

سلسبیل:(سَل-سَ-بیل)اسم- واحد- مذکر- دَ جنت دَ یوې ولې نوم چې شات (شهد) او پئ پکښې بهیږی- (م- عربی)-

سلسلت:(سَل-سَ-لت)اسم- واحد/جمع- مذکر- دبدبه- شان و شوکت- ساز و سامان-

سلسله:(سل-س-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لړی- زنځیر- وړدوالے- قطار- پرله پسې والے- (۲)کورنی- (م- عربی)-

سلطان:(سُل-طان)اسم صفت- باچا- بادشاه- واکمن- اختیارمن- حکم چلونکے-

سلطانی:(سُل-طا-نی)صفت- سلطان سره متعلق- سلطان پورې مربوط-

سلطنت:(سَل-طَ-نَت)اسم- واحد- مذکر- بادشاهی- حکمرانی- حکومت-

سلطه:(سَل-طه)اسم- واحد- مؤنث- قوت- زور- واک- اختیار- قدرت- (افغانستان)- (عربی)-

سلغمات:(سَل-غَ-مات)اسم- سنګ پشت- شمشتی- مېچنی-

سلف:(سَ-لَف)اسم- واحد- مذکر- تېر شوی- پخوانی خلق- اولنی خلق- دَ تېرې زمانې مخلوق- (م- عربی)-

سل کاله:(سَل-کا-له)اسم- صدی- پېړی-

سلک:(سلک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ موتیانو (مرغلرو) هار یا لړی- (۲)قطار- پله- صف- (م- عربی)-

سل کروړه:(سَل-کرو-ړه)اسم عدد- وګورئ اَرب-

سل کلن:(سَل-کَ-لَن)اسم صفت- سل کلنے- دَ سلو کالو-

سل کلنے:(سَل-کَ-لَ-نے)اسم صفت- دَ سلو کالو سړے- هغه سړے چې عمر ئې

ی (ځی-رَل)، ې(مې-ره-وَل)، ئ(پیا-لِی)، ے(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

سل کاله ږی- سل کلن-

سلک:(س-لک)اسم- واحد- مذکر- هغه لو شوی غنم چي لا غوبل شوی نهٔ وی-

سلګه:(سل-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غنم دَ ږانډی هغه برنی برخه چي وږے وريوري نښتے وی-

سلګۍ:(سل-ګۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سګلې- اېټکې- نښتې نښتې ژړا-

سلم:(س-لم)اسم- دَ غلې دَ خريدارۍ نه وړاندې دَ هغې قيمت ادا کونه- (م- عربی)-

سلم:(س-لم/س-لِم)اسم صفت- سلم عدد- سلم نمبر- دَ سلو عدد سره متعلق-

سلم:(س-لم)اسم- واحد- مذکر- ټبر- قبيله- خاندان- خېل- طائفه-

سلمانی:(سل-ما-نی)اسم- واحد- مذکر- نائی- هغه څوک چي دَ خلقو سرونه او ږيرې جوړوی- (افغانستان)-

سلمچی:(س-لم-چی)اسم- واحد- مذکر- چيلمچی- لاس وينځونکے-

سلمشر:(سل-مهٔ-شر)اسم صفت- دَ سلو سپاهيانو مشر- يوه فوځی عهده-

سلمه:(سل-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حېرانتيا- تعجب- حېرت- اريانی- (۲)دَ سرو يا سپينو يو قسم پرقېدونکے تار چي پهٔ کپړه يا څپلو پرې بوټي وغېره کولے شي-

سلمه:(سل-مه)اسم- واحد- مؤنث- کورنی- خېل- قبيله- خاندان- ټبر-

سلمه ستاره:(سل-مه-س-تا-ره)اسم مرکب- سلمه او ورسره ستارې ټک رهنه- دَ سلمه ستارې کار-

سلنده:(سلن-ده)اسم صفت- واحد- مؤنث- شنډه ښځه- هغه ښځه چي بچی يې نهٔ کيږی-

سلوا:(سل-وا)اسم- واحد- مذکر- مرز- بټېر- سلوی- (م- عربی)-

سلواغه:(سل-وا-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بوکه- دَ څرمنې هغه لوښے چي دَ کوهی نه پرې اَبهٔ راويستے شي- (۲)دَ دلوی مياشت-

سلوتری:(س-لو-تری)اسم صفت- سنوتری- دَ ږنګرو معالج- دَ څارويو ډاکټر- (م- هندی)-

سلوک:(س-لوک)اسم- واحد- مذکر- رويه- کردار- طور طريقه- خوی خصلت-

سلوکی:(س-لو-کی)اسم- مخور- عزتمند-

سلوم:(سلوم)اسم صفت- (۱)څرګند- ښکاره- (۲)نوموړے- مشهور-

سلونه:(س-لو-نه)اسم- نمکين-

سلونه توب:(س-لو-نه-توب)اسم- نمکين توب-

سلوه:(سل-وه)اسم- واحد- مؤنث- مرسته- مهربانی- مهربانګی-

سلوی:(سل-وی)اسم- واحد- مذکر- هغه طعام چي خدای پاک به بنی اسرائيلو ته دَ مرزو پهٔ شکل کښې پهٔ کثرت سره ورکولو- سلوا-

سله:(س-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ غنمو يا اوربشو دَ وږی لشه- لشه- لشکی- (۲)هغه تندی غوا چي پنځ يې ډېر ټينګ او غوږ وی-

سله:(سهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خښته- خشته- (۲)دَ خښتې قالب- دَ خښتې سانچه- چکی-

سليپر:(س-لی-پر)اسم- واحد- مذکر- يو قسم بوټان چي ډېر پهٔ اسانه پهٔ پښو کښې اچولے شي-

سليټ:(سليټ)اسم صفت- سليټ- تر ځلې ځلې ړک- بې شانه ړک-

سليټی:(س-لی-ټی)اسم- واحد- مؤنث- چلی- ترنګړ- ترنګړ-

سليچه:(س-لی-چه)اسم- واحد- مؤنث- سنګين-

سليز:(سهٔ-ليز)اسم صفت- دَ سلو- سلم- دَ سلو روپيو نوټ-

سلير:(س-لير)اسم صفت- دَ ترتيب پهٔ لحاظ "سلم"- دَ سلو-

سليس:(س-ليس)اسم- واحد/جمع- مذکر- آسان- ساده- عام فهم- دَ ګران يا مشکل ضد-

سليقه:(س-لی-قه)اسم- واحد- مؤنث- تميز- هنر- لياقت- سنجيدګی-

سليکه:(سلی-که)اسم- واحد- مؤنث- څريکه- داره- بربښ-

سليم:(س-ليم)اسم صفت- نرم زړے- ښهٔ زړے- هغه څوک چي دَ زړهٔ نه ډېر ښهٔ وی-

سلېټ:(س-لېټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هر هغه ماده چي دَ څارويو شکو نه جوړه شوی وی- (۲)هغه توره تختی چي پهٔ چاک يا سلېټی پرې ليکل کيږی-

سلېټی:(س-لې-ټی)اسم- هغه سپين سخت چاک چي پهٔ سلېټ وربانديې ليکل کيږی-

سلېښ:(سلېښ)اسم- واحد/جمع- مذکر- سلېښت- سرېښ- سرېش- ګوند-

سلېښناک:(سلېښ-ناک)اسم صفت- دَ سلېښو يا سرېښو اثر لرونکے- سلېښژن-

سلېښناکه:(سلېښ-نا-که)اسم صفت- واحد- مؤنث/مذکر- سرېښناکه- پهٔ سلېښو لړلے-

سلېښت:(سلېښت)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګوری سلېښ-

سلېښکی:(سلېښ-کی)اسم- سرېښ- سلېښ-

سلېمان:(س-لې-مان)اسم- دَ يو مشهور پېغمبر نوم چي پهٔ انسانانو، پېريانو او ديوانو به يې حکومت کولو- دَ ځناورو او حشراتو پهٔ ژبه پوهېدو-

سلېمانی:(س-لې-ما-نی)اسم صفت- (۱)يو قسم تور او سپين رنګ لرونکے کانړے چي دَ اوږهٔ کولو نه پس سترګو کښې واچولے شي نو دا خبره مشهوره ده چي هغه کس ته هر څهٔ ښکاری خو هغه چا ته نهٔ ښکاری- (۲)حضرت سليمان عليه السلام ته منسوب-

سلېمانۍ:(س-لې-ما-نۍ)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم غمے يا مری چي ډېره مبارکه ګڼلے شي-

سلی:(س-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ټوپک صفا کولو سيخ چي لهٔ اُسپنې جوړ وی- (۲)انبار- ډېرے- دلی- خری- کوټه-

سلے:(س-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ پيتلو يا جستو ګټمه- بې غمی ګټه-

سم:(سم)اسم صفت- واحد جمع- مذکر- روغ- جوړ- نېغ- درست- برابر- صحيح- مؤنث سمه-

سم:(سم)اسم- واحد جمع- مذکر- زهر- وژونکے څيز- ګندېر- جړ-

زبر"(ځ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ة"(ژ-ره)، ۀ"(پو-هې-دهٔ)

(م- عربي)-

سُم:(سُم)اسم- واحد- مذکر- غار- سُرے- دَ ستنې سورے- سروے- سپم- (م- عربي)-

سما:(سَ-ما)اسم- واحد- مذکر- (۱)سماٴ- آسمان- (۲)چت-

سماد:(سَ-ماد)اسم- سمون- عدل-

سماج:(سَ-ماج)اسم- واحد- مذکر- تهذيب- معاشره- (م- سنسکرت)-

سماجت:(سَ-ما-جت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټينګېدنه- (۲)ترېوېدنه- (۲)منت- خوشامنده- فرياد- (م- عربي)-

سماجي:(سَ-ما-جي)اسم صفت- دَ سماج سره متعلق-

سماچه:(سَ-ما-چه)اسم- واحد- مؤنث- سينه بند- باډي- هغه پوشاک چې زنانه يې سينې ته اچوي-

سماسه:(سَ-ما-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سموسه-

سماع:(سَ-ماع)اسم- واحد- مذکر- اورېدنه- (م- عربي)-

سماعت:(سَ-ما-عت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سماع- (م- عربي)-

سماعي:(سَ-ما-عي)اسم صفت- (۱)اورېدلے- (۲)دَ اورېدو- دَ اورېدو سره متعلق-

سماغ:(سۀ-ماغ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ونه او دَ هغې ميوه چې ترېو خوند لري-

سمانه:(سَ-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- پېل و پال- اَخ و ډب- سامانه-

سماؤ:(سَ-ماؤ)اسم- واحد- مذکر- (۱)عدل- انصاف- (۲)سموالے- درست والے-

سماوات:(سَ-ما-وات)اسم- جمع- مذکر- دَ سماٴ جمع- اسمانونه- وګورئ سماٴ-

سماوات:(سَ-مه-وات)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سره سمواتې-

سماوار:(سَ-ما-وار)اسم- واحد- مذکر- لۀ زيړو نه جوړ دَ اَبو ګرمولو لوښے چې بمبه پکښې لګېدلې وي-

سمباتي:(سم-با-تي)اسم- کناټي- سمباتي-

سمباټي:(سم-با-ټي)اسم- کناټي- سمباتي-

سمبال:(سَم-بال)اسم صفت- سنبال- (۱)جوړ- تيار- برابر- (۲)سينګار کړے- مؤنث سمباله-

سمبالښت:(سَم-با-لښت)اسم- سنبالښت- (۱)تيارے- برابرے- (۲)سينګارونه- ږول ډال- (۳)حفاظت-

سمبالول:(سَم-با-ل-وَل)مصدر متعدي- (۱)جوړول- تيارول- برابرول- (۲)سينګارول-

سمبالون:(سَم-با-لَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سمبالول-

سمبالونکے:(سَم-با-ل-وون-کے)اسم فاعل- جمع سمبالونکي- مؤنث سمبالونکې- وګورئ سمبالول-

سمبالونګ:(سَم-با-ل-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سمبالول-

سمبالونه:(سَم-با-لَ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سمبالول-

سمبالوۀ:(سَم-با-ل-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ سمبالول-

سمبالي:(سم-با-لي)اسم- واحد- مذکر- (۱)انتظام- سمبالېدنه- سمبالښت- (۲- صفت)سمبالونکے-

سمبالېدل:(سَم-با-لې-دل)مصدر لازم- (۱)جوړېدل- تيارېدل- برابرېدل- (۲)سينګارېدل-

سمبالېدن:(سَم-با-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سمبالېدل-

سمبالېدنګ:(سَم-با-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سمبالېدل-

سمبالېدنه:(سَم-با-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سمبالېدل-

سمبالېدونکے:(سَم-با-لې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع سمبالېدونکي- مؤنث سمبالېدونکې- وګورئ سمبالېدل-

سمبالېدۀ:(سَم-با-لې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ سمبالېدل-

سمبوسه:(سم-بو-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سموسه- (م- فارسي)-

سمبوغکه:(سَم-بو-غه-که)اسم- واحد- مؤنث- وړوکے او تنګ لوښے- (افغانستان)-

سمبه:(سم-به)اسم- واحد- مؤنث- تبر يا ترېنځ کښې دَ لاستي اچولو سُورے-

سمت:(س-مت/سمت/سمت)اسم- واحد- مذکر- (۱)طرف- خوا- لور- لورے- پلو- (م- عربي)- (۲)کافي مقدار- پوره اندازه-

سمتره:(سم-تَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سنګتره-

سمته:(سَ-مه-ته)اسم- واحد- مؤنث- برابر مقدار- کافي- جمع سمتې-

سمټ:(س-مټ)اسم صفت- واحد- مذکر- لويه پګړۍ-

سمټر:(سۀ-مۀ-ټر)اسم صفت- ډېر ځرب- غوښن- چاغ- ډېر غټ- شلنډ-

سمټه:(سۀ-مۀ-ټه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)لويه پګړۍ- غټ پټکے- (۲)چاغه- ځربه- شلنډه-

سمټے:(سم-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ وړو ماشومانو يوه لوبه چې پۀ کاڼو يې کوي- (افغانستان)-

سمچين:(سم-چين)اسم- ځمکه کښې ځۀ شے جوړونه او بيا پوښنه- زمين دوز- (کاکړ)-

سمڅ:(س-مڅ)اسم- واحد- مذکر- سمڅه- غار- کاره- پۀ غرۀ کښې قدرتي غار-

سمڅه:(س-مۀ-څه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سمڅ-

سمخ:(س-مخ)لاحقه- دَ سوړ سره يوځاې راځي او دَ تاکيد پۀ معنو کښې استعماليږي-

سمخ سترګے:(سَ-مخ-ستَر-ګے)اسم صفت- کلک سترګے- شوخ چشمه- سپين سترګے-

سمخنے:(سَ-مه-خۀ-نے)اسم- واحد- مذکر- جونګړه- هغه کېږدۍ چې دَ زړو ټوکرانو نه جوړيږي- (افغانستان)-

سمدار:(سَم-دار)اسم صفت- لکۍ وال- لکے وال- لکۍ لرونکے-

سمدست:(سم-دست)متعلقِ فعل- سمدستي- سم دَ لاسه- فوراً- ناگهانه- ناڅاپه- اتفاقاً-

سمدستي:(سَم-دَس-تي)متعلقِ فعل- فوراً- دَ سترګو رپ کښې- دَستي- ژر- بې لهٔ ځنډه-

سم دَ لاسه:(سَم-دَ-لا-سه)مرکب/متعلقِ فعل- وګورئ سمدستي-

سمدم:(سَم-دم)اسمِ صفت- (۱)روغ جوړ- ابغ نيغ- روغ رمټ- سالم- (۲)اصل- برابر-

سمدني:(سَم-دَ-ني)اسم صفت- سمدستي- ناګهانه- ناڅاپه-

سمر:(س-مَر)اسم- واحد- مذکر- هغه وړه قيصې چې ماشومانو ته دَ اودهٔ کېدو نه مخکښې اچولے شي- (م- عربي)-

سمرن:(سُم-رن)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ هندوانو دَ عبادت کولو مالا- (۲)تور- (کاکړ)-

سمساتنه:(سم-سا-تهٔ-نه)اسم- امانت-

سمساره:(سَم-سا-ره)اسم- واخد- مؤنث- وګورئ سمسره-

سمسره:(سم-سه-ره)اسم- واحد- مؤنث- سمسيره- سمساره- سوسماره- شلخوړکه-

سمسود:(سَم-سود)اسم- واحد- مذکر- دَ انار دَ ونې پهٔ شان يوه زمرژنه غرنيزه ونه-

سمسور:(سَم-سور)اسمِ صفت- تروتازه- شګفته- غوړېدلے- رسېدلے فصل-

سمسورتوب:(سَم-سور-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ګلونو او ونو غوړېدنه- (۲)دَ فصل پخېدنه-

سمسورتيا:(سَم-سور-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سمسورتوب-

سمسوروالے:(سَم-سور-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سمسورتوب-

سمسورول:(سَم-سو-ر-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)تروتازه کول- ګلونه غوړول- (۲)فصل پخول- (۲)آبادول-

سمسوروَن:(سَم-سو-ر-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورول-

سمسورونکے:(سَم-سو-ر-وَن-کے)اسمِ فاعل- جمع سمسورونکي- مؤنث سمسورونکې- وګورئ سمسورول-

سمسورونګ:(سَم-سو-ر-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورول-

سمسورونه:(سَم-سو-ر-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورول-

سمسوروهٔ:(سَم-سو-ر-وَهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورول-

سمسوري:(سَم-سو-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ سمسورتوب- (۲)غېرت-

سمسورېدل:(سَم-سو-رې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)تروتازه کېدل- (۲)پخېدل- (۲)ځواني ته رسېدل- (۴)آبادېدل-

سمسورېدن:(سَم-سو-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورېدل-

سمسورېدنګ:(سَم-سو-رې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورېدل-

سمسورېدنه:(سَم-سو-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورېدل-

سمسورېدونکے:(سَم-سو-رې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ سمسورېدل-

سمسورېدهٔ:(سَم-سو-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ سمسورېدل-

سمسورے:(سَم-سو-رے)اسمِ صفت- يو شان- پهٔ يوه انداز- رتبه او طاقت کښې مساوي- برابر- سارے- انډول- مانند-

سمسيره:(سم-سي-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سمسره-

سمښت:(س-مَښت)اسم- واحد- مذکر- سمون- برابري- برابروالے-

سمښت:(سَمښت)اسم- واحد- مذکر- بُغض- کينه- حسد-

سمع:(س-مع)اسم- واحد- مذکر- (۱)غوږ- دَ اورېدو حس- (۲)اورېدنه-

سمعي:(سم-عي)اسم- واحد- مذکر- دَ اورېدو- هغه څهٔ چې اورېدے شي-

سمغولي:(سَم-غو-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سمغالے- دَ سوې دَ وسېدو ځاې-

سمک:(س-مک)اسم- واحد- مذکر- کب- ماهے- مهے-

سمند:(س-مَند)اسم- واحد- مذکر- زېړبخن اس-

سمندر:(س-مَن-دَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوئ درياب- بحر- (۲)اورمږک- سيتي- دَ اور چينجے-

سمندروز:(س-مند-روز)اسم- واحد- مذکر- يو قسم رېښمينه کپړه- (افغانستان)-

سمندري:(س-مَن-دهٔ-ري)اسمِ صفت- سمندر سره متعلق- وګورئ سمندر-

سمندے:(س-مَن-دے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم زېړ رنګ لرونکے منږک-

سمنډول:(س-مَن-ډول)اسم- واحد- مذکر- شين ګلے- شوم ګل- يو قسم وابنهٔ-

سمنګے:(س-مَن-ګے)اسم- واحد- مذکر- يو وړوکے دسترخوان چې پهٔ ډوډيو يا پېړو پهٔ دې غرض خوروَلے شي چې ګرد يا دوړه پرې ونهٔ غرځيږي-

سمنه:(س-مهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- اصلاح- ترتيب- سمُون- برابري- سمونه-

سموالے:(سَم-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- صحيح والے- درست والے- نېغ والے- سمون-

سمور:(س-مُور)اسم- واحد- مذکر- دَ ګيدړ نه لږ وړوکے تور رنګ لرونکے ځناور چې دَ څرمنې نه ې ټوپۍ او دَ کالو استر جوړولے شي- تورلمے-

سموسه:(س-مو-سه)اسم- واحد- مؤنث- مخروطي شکل لرونکے دَ مېدې نه جوړ يو قسم خوراک چې مېنځ کښې ې قيمه، الوګان، پياز او دنيا وغېره کېږ وي او غوړيو کښې تلېدلے وي-

سمول:(س-م-وَل)مصدرِ متعدي- (۱)برابرول- جوړول- تنظيمول- رغول- (۲)اصلاح کول- لارې ته راوستل-

سموم:(س-موم)اسم- واحد/جمع- مذکر- ګرمه هوا- زهريله هوا- جوله-

سمون:(س-مُون)اسم- واحد- مذکر- سمے- برابرے- روغ والے- تصحيح- جوړښت- موافقت-

سمون:(س-م-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ سمول-

سمونتون:(س-مُون-تون)اسم- واحد- مذکر- کارخانه- فيکټري- هغه ځاې

زبر"(ح-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېښ"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(ږو-بې-دهٔ)

چې مصنوعات پکښې تیاریږی-

سمونکے:(سَ-مِ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سمونکي- مؤنث سمونکې- وګورئ سمول-

سمونګ:(سَ-مَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سمول-

سمونه:(سَ-مَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سمول-

سموهٔ:(سَ-مَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سمول-

سمه:(سَ-مه)اسم صفت- واحد- (۱)دَ سم مؤنث- وګورئ سَم- (۲)درسته خبره- صحیح خبره- (۳)هواره- مسطح-

سمی:(سَ-مي)اسم صفت- دَ زهرو- زهرژن-

سمیار:(سَم-یار)اسم صفت- چمیار- موچی-

سمیع:(سَ-میع)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اورېدونکے- (۲)دَ خدایٔ پاک یو صفتي نوم-

سمېدل:(سَ-مې-دل)مصدر لازم- (۱)برابرېدل- جوړېدل- تنظیمېدل- روغېدل- رغېدل- (۲)لارې ته برابرېدل- اصلاح کېدل-

سمېدن:(سَ-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سمېدل-

سمېدنګ:(سَ-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سمېدل-

سمېدنه:(سَ-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سمېدل-

سمېدونکے:(سَ-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ سمېدل-

سمېدهٔ:(سَ-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سمېدل-

سمے:(س-مے)اسم- (۱)سمون- برابرے- جوړ- تړون- پیوند- سموالے- (۲)کچکر-

سن:(سَن)اسم- واحد- مذکر- عمر- کال- دَ عمر مقدار-

سنا:(سهٔ-نا/س-نا)اسم- واحد- مؤنث- دَ مشرانو جرګه- دَ مشرانو مجلس-

سناخ:(س-ناخ)اسم- کوړې-

سنار:(سَ-نار)اسم صفت- واحد- مذکر- زرګر- صراف-

سناری:(س-نا-ری)اسم- (۱)سکالي- پاولي- (۲)زرګري- (۲- صفت)طلاکاري شوے- مطلا-

سناسی:(سَ-نا-سي)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سنهاسي-

سنان:(س-نان)اسم- واحد- مذکر- دَ نېزې تېره څوکه- دَ غشي څوکه- شلګے- برجو- باټ-

سنبال:(سَم-بال)اسم صفت- سمبال- (۱)جوړشوے- تیار- برابر- (۲)ږول سینګار کړے-

سنبالښت:(سم-با-لښت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سمبالښت-

سنبالول:(سم-با-له-ول)مصدر متعدي- وګورئ سمبالول-

سنبل:(سُم-بل)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے او دَ هغې ګل چې زړهٔ راکښونکې خوشبوئ کوي او دَ نرۍ نرۍ تارونو پهٔ شکل کښې لیدے شي- څڼې- څڼې کوکو-

سنبل زار:(سُم-بل-زار)اسم- هغه ځایٔ چې دَ سُنبل ګلونه پکښې کېږي-

سنت:(سُ-نت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ اسلامي قانون دوېم ماخذ- طریقه- روش- (۲)دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم طور طریقه او عادت و اطوار- (۳)سونت- ختنه- هغه طریقه چې دَ مسلمانانو بچو نه دَ شرعي احکاماتو مطابق دَ چوني (سوخې) دَ سر پسته حصه پرېکولے شي-

سنترورزه:(سنت-رو-زه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم مېوه-

سنتره:(سَن-تَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- خوږکمبرے- سنګتره- دَ مالټې پهٔ شان یوه اُبهٔ لرونکې مېوه-

سنتری:(سَن-تَري)اسم- واحد- مذکر- سرکاري پهره دار- سپاهي- څوکیدار- جمع سنتریان-

سنتول:(سُ-نَ-تَ-وَل)مصدر متعدي- (۱)ختنه کول- سونتول- پهٔ ماشوم والي دَ ذَکر دَ سر نه اضافي غوښه پرېکول- (۲)دَ چا نه پهٔ ټګۍ څهٔ اخستل یا شوکول-

سنتون:(سُ-نَ-تَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ سنتول-

سنتونکے:(سُ-نَ-تَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ سنتول-

سنتونه:(سُ-نَ-تَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنتول-

سنتېدل:(سُ-نَ-تې-دل)مصدر لازم- سونتېدل- ختنه کېدل- پهٔ ماشوم والي دَ ذکر دَ سر نه اضافي غوښه پرېکېدل- (۲)مجازاً دَ چا نه پهٔ ټګۍ څهٔ اخستے کېدل یا شوکېدل-

سنتېدن:(سُ-نَ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سنتېدل-

سنتېدنګ:(سُ-نَ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سنتېدل-

سنتېدنه:(سُ-نَ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنتېدل-

سنتېدونکے:(سُ-نَ-تې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سنتېدونکي- مؤنث سنتېدونکې- وګورئ سنتېدل-

سنتېدهٔ:(سُ-نَ-تې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سنتېدل-

سنته:(سُ-نَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- غړاڅکے- یو غرنیز بوټے-

سنټ:(سُ-نټ)اسم- واحد- مذکر- سټکے- سندان-

سنټه:(سَن-ټه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څېره- قیافه- بڼه- (۲)لنډه- (افغانستان)-

سنج:(سَنج)اسم- واحد- مذکر- هغه نرے دېوال چې دَ کوټې دَ پاسه دَ پردې راوستو دَ پاره چارچاپېره تاؤ وي-

سنج:(سَنج)اسم صفت- غمژن- پرېشانه- خفه- دلګیر- دق-

سنجاب:(سَن-جاب)اسم- واحد- مذکر- دَ پیش نه لږ وړوکے خناور-

سنجاق:(سَن-جاق)اسم- واحد- مذکر- دَ سټېل یو قسم وړه ستن چې یو سر یٔ تېرهٔ او بل غُنډ وي-

سنجتوب:(سَنج-توب)اسم- واحد- مذکر- غمژن توب- پرېشاني- خفګان-

سنجوالے:(سَنج-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سنجتوب-

سنجول:(سن-ج-ول)مصدر متعدي- تلل- اندازه کول-

سنجولے:(سَن-جَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سنجولي- مؤنث سنجولې- وګورئ

ئ (څې-رل)، ې (هې-ره-وَل)، ي (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

سنجول۔

سنجون:(سن-ج-ون)حاصل مصدر- وګورئ سنجول۔

سنجونکے:(سن-ج-وون-کے)اسم فاعل- جمع سنجونکی- مؤنث سنجونکې- وګورئ سنجول۔

سنجونګ:(سن-ج-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سنجول۔

سنجونه:(سن-ج-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنجول۔

سنجیته:(سن-جی-ته)اسم- واحد- مؤنث- د ولې (بید) په شان يو قسم ونه۔

سنجيده:(سن-جی-ده)اسم صفت- مهذبه- د عقل او فکر خاوند۔

سنجېدل:(سن-جې-دل)مصدر لازم- اندازه کېدل- تللے کېدل۔

سنجېدلے:(سن-جې-ده-لے)اسم مفعول- جمع سنجېدلی- مؤنث سنجېدلې- وګورئ سنجېدل۔

سنجېدن:(سن-جې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سنجېدل۔

سنجېدنګ:(سن-جې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سنجېدل۔

سنجېدنه:(سن-جې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنجېدل۔

سنجېدونکے:(سن-جې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سنجېدونکی- مؤنث سنجېدونکې- وګورئ سنجېدل۔

سنجېده:(سن-جې-ده)حاصل مصدر- وګورئ سنجېدل۔

سنخل:(سن-خل)مصدر متعدی- (۱)تویول- خالی کول- (۲)آزادول- خوشې کول- ایله کول۔

سنخلی:(سن-خلی)اسم- واحد- مؤنث- سیزنی- د ماشومانو د روږی (اوربی) د تېرلو مزے۔

سنخے:(سن-خے)اسم- وګورئ خمزورے۔

سنچوټ:(سن-چوټ)اسم- واحد- مذکر- هغه تیره یا کانړے چې په دېوال کښې د نښې په غرض ایښودے کیږی۔

سند:(س-ند)اسم- واحد- مذکر- (۱)ثبوت- سرټیفیکیټ- سرټیفیکیټ- وثوق- اعتبار- (۲)هغه تحریر چې تعلیم یا څه اهم څیز ثابتوی- تصدیق نامه- لیکلے حکم۔

سند:(سند)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سیند- (افغانستان)۔

سندان:(سن-دان)اسم- واحد- مذکر- د اسپنې کوړۍ چې لوهاران وربانديې اسپنه ږدی او بیا یې په پلک ټکوی۔

سندانکه:(سن-دا-نه-که)اسم- واحد- مؤنث- د چرګ چرګوړو شاټینکه- (افغانستان)۔

سندر:(سن-در)اسم صفت- (۱)ښکلې- ښائسته- حسینه- (۲)يو قسم مضبوط لرګے چې جهازونه ترې جوړولے شی- (۳)وګورئ سندور۔

سندربول:(سن-در-بول)اسم صفت- وګورئ سندرغاړے- مؤنث سندربوله۔

سندرغاړے:(سن-در-غا-ړے)اسم صفت- سندربول- سندرې ویونکے- د ساز سره آواز ویستونکے- لوبې ویونکے۔

سندرکه:(سن-در-که)اسم- واحد- مؤنث- د آبو فواره۔

سندره:(سن-ده-ره)اسم- واحد- مؤنث- لوبه- ترانه- جمع سندرې۔

سندرېړے:(سند-رې-ړے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم صحرائے واښه چې نری پاسته ازغی لری۔

سندړ:(سن-دړ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم غټ اوبښ- (افغانستان)۔

سندوخ:(سن-دوخ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ صندوق- (افغانستان)۔

سندوته:(سن-دو-ته)اسم- واحد- مؤنث- زېړ ګل لرونکې يوه ونه او د هغې مېوه۔

سندوخچه:(سن-دوخ-چه)اسم تصغیر- صندوقچه- وړوکے صندوق۔

سندور:(سن-دور)اسم- جمع- مذکر-سوندر- يو قسم سره سفوف- سیندور- سندر۔

سندورے:(سن-دو-رے)اسم- هغه زانه چې سر یې سور مائل وی۔

سندول:(سن-ده-ول)مصدر متعدی- رایې ورکول- مشوره ورکول- سفارش کول- مصلحت کول۔

سنډے:(سن-ډے)اسم- واحد- مذکر- د ګل لاله بوټے۔

سنډ:(سنډ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم بوټے او د هغې پټ چې پړے ترې غړلے شی۔

سنډا:(سن-ډا)اسم- واحد- مذکر- (۱)د مېښې نر- (۲- صفت)مجازاً غټ کټ او خرب سړے۔

سنډاس:(سن-ډاس)اسم- واحد- مذکر- منډاس- ټټی- غسل خانه- پاخانه۔

سنډاسی:(سن-ډا-سی)اسم- واحد- مذکر- هغه ملنګ یا فقیر چې په غرونو او صحراګانو د کیمیا په بوټی پسې ګرځی۔

سنډک:(سن-ډک)اسم- واحد- مذکر- د مستو یا شلو د چنولو ټوکره۔

سنډل:(سن-ډل)مصدر لازم- څه څیز په زوره اوچتول راخلاصول- سنډوهل- څنډل۔

سنډمسنډ:(سنډ-م-سنډ)اسم صفت- غټ پټ- تکړه تیار- ښه خورب او چاق۔

سنډن:(سن-ډن)حاصل مصدر- وګورئ سنډل۔

سنډنګ:(سن-ډنګ)حاصل مصدر- وګورئ سنډل۔

سنډنه:(سن-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنډل۔

سنډونکے:(سن-ډون-کے)اسم فاعل- جمع سنډونکی- مؤنث سنډونکې- وګورئ سنډل۔

سنډه:(سن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)صحرائی توره زرکه- (۲- صفت)شنډه ښځه- (۲)هغه چرګه چې اګۍ نه اچوی۔

سنزلوک:(سن-ز-لوک)اسم- واحد- مذکر- يو قسم واښه چې د بلوط د ونې لاندې رازرغنیږی او همیشه شین وی۔

سنزله:(سن-ز-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تسندے- (۲)يوه ونه چې لکه د مرخنیو مېوه نیسی۔

سنسکرت:(سن-سک-رت)اسم- واحد- مذکر- (۱)صفا- پاک- پاکیزه- (۲)د هندوانو يوه پخوانۍ ژبه۔

سنګ:(سَ-نګ)اسم- واحد- مذکر- د لرګي يا خاورو نه جوړ غټ بشانګ-
سنګه:(سَهٔ-نَهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- د کونټرو نيولو يو قسم لومه-
سنګيا:(سنګ-يا)اسم- واحد- مذکر- (۱)زرنيخ- يو زهرژن کاڼے- (۲)مر مُضر ځير-
سنګ:(سنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کاڼے- (۲)وزن- بُوج- (م- فارسي)-
سنګ:(سنګ)اسم صوت- (۱)د ماشوم د ژړا نرے آواز- (۲)د ټوپک د ګولۍ آواز-
سنګار:(سنګ-ګار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سينګار-
سنګارول:(سنګ-ګا-رَ-وَل)مصدر متعدي- جوړول- ښائسته کول- سمبالول- ښکلي کول-
سنګارون:(سنګ-ګا-رَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سنګارول-
سنګارونکے:(سنګ-ګا-ر-وون-کے)اسم فاعل- جمع سنګارونکي- مؤنث سنګارونکې- وګورئ سنګارول-
سنګارونګ:(سنګ-ګا-رَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سنګارول-
سنګارونه:(سنګ-ګا-رَ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنګارول-
سنګاروهٔ:(سنګ-ګا-رَ-وَهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سنګارول-
سنګاره:(سنګ-ګا-ره)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم ازغن بوټے چې مېوې ته ئې سينګاړه وائي- د دې بوټي ځېلې په اُبو کښې وي-
سنګاري:(سن-ګا-ري)اسم- واحد جمع- مؤنث- د کېانو مشهور قسم چې رنګ ئې ږوب سور يا باټينګړې وي-
سنګاوړ:(سينګ-ګا-وړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پتوار- سکان- د کشتۍ وروستۍ برخه- (۲)هغه لويه چپه چې کشتي پرې چلولے شي-
سنګتا:(سنګ-تا)اسم- واحد- مؤنث- د يرې دوائي نوم-
سنګتاؤ:(سنګ-تاؤ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ترکيبي ډرمل-
سنګتيا:(سنګ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- زرنيخ- منرک جړ-
سنګ تراش:(سنګ-تَ-راش)اسم صفت- کاڼي توګلو والا- قيمتي کاڼي نه غمي جوړونکے- د کاڼو نه ځيزونه جوړونکے-
سنګ تراشي:(سنګ-ترا-شي)اسم- واحد- مؤنث- د سنګ تراش کار او پېشه-
سنګتره:(سنګ-تَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- د مالټې د خاندان يوه مېوه چې خوږ خوند لري او پوستکے ترې ډېر په آسانه جدا کيږي- د CITRUS د خاندان يوه ونه او د هغې مېوه-
سنګټ:(سنګ-ګټ)اسم- واحد- مذکر- قفس-
سنګدان:(سنګ-دان)اسم- واحد- مذکر- د چرګ ښاټينګه-
سنګدل:(سنګ-دل)اسم صفت- سخت سړے- ظالم- بې رحمه- د کلک زړهٔ خاوند-
سنګدلي:(سنګ-دَ-لي)اسم- واحد- مؤنث- بې رحمي- ظلم-
سنګر:(سنګ-ګر)اسم- واحد- مذکر- (۱)مورچل- مورچه- (۲)کچه قلا- (۳)پُشته-

سنګراني:(سنګ-را-ني)اسم صفت- تېزرفتاره آس-
سنګره:(سنګ-ره)اسم- واحد- مؤنث- د جنډ د ونې پلے-
سنګري:(سنګ-ري)اسم- جمع- مؤنث- غټې وريژې- د شولې وريژې-
سنګرېزه:(سنګ-رې-زه)اسم- جمع- مؤنث- باجرې- چانګړ- واړهٔ کاڼي-
سنګړه:(سنګ-کَهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پلنه او غټه تيره-
سنګزن:(سنګ-زَن)اسم صفت- ځنګزن- په ترخ-
سنګسار:(سنګ-سار)(۱- اسم صفت)هغه څوک چې د څهٔ سزا په وجه په کاڼو دې حد له وويشتے شي چې مړ شي- (۲- اسم)ډېر وژنه- د کاڼو په ويشتو مړکونه-
سنګسارول:(سنګ-سا-رَ-وَل)مصدر متعدي- په کاڼو ويشتل او مړهٔ کول-
سنګسارون:(سنګ-سا-رَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سنګسارول-
سنګسارونکے:(سنګ-سا-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ سنګسارول-
سنګسارونه:(سنګ-سا-رَ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنګسارول-
سنګسارېدل:(سنګ-سا-رې-دَل)مصدر لازم- په کاڼو ويشتلے کېدل او مړهٔ کېدل-
سنګسارېدن:(سنګ-سا-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سنګسارېدل-
سنګسارېدنه:(سنګ-سا-رې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سنګسارېدل-
سنګسارېدونکے:(سنګ-سا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سنګسارېدونکي- مؤنث سنګسارېدونکې- وګورئ سنګسارېدل-
سنګسارېدهٔ:(سنګ-سا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سنګسارېدل-
سنګ سول:(سنګ-سول)اسم- واحد- مذکر- د شمالي علاقو په غرونو کښې پيدا کېدونکے يو قسم بوټے-
سنګک:(سنګ-ګک)صفت- (۱)متکر- مټکور- (۲)د يخنۍ له کبله د حبوباتو يا په ونو کښې د مېوو وچېدنه- (۲)مشکله موضوع يا کار-
سنګکه:(سنګ-ګَ-که)اسم- واحد- مؤنث- د زنانهٔ يوه بيماري چې د اولاد د پيدا کېدو نه پس پېدا کيږي- (افغانستان)-
سنګلاخ:(سنګ-لاخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سکوره- کُداله- کُدالي- (۲)کاڼېزه زمکه-
سنګلاؤ:(سنګ-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- يو آبي ځناور- سګلاهو-
سنګوپ:(سنګ-ګوپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سرکوڼړې- سرکنډې- سرلاټې- سرکول- سرکونړو- (افغانستان)-
سنګوټے:(سنګ-ګو-ټے)اسم- واحد- مذکر- د سوې بچے-
سنګورے:(سنګ-ګو-رے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم صحرائي بوټے-
سنګوړے:(سنګ-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ځناور بچے- (۲)ښائسته او ښکلے ماشوم-
سنګيت:(سنګ-ګيت)اسم- واحد- مذکر- د موسيقي علم- د موسيقي پوهه-
سنګين:(سنګ-ګين)اسم صفت- (۱)د دبدبې او وقار ښښتن- دروند- پټ من-

ی (خي-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ے (تن-دے)، ۍ (پيا-لۍ) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

(۲)یو قسم پېشغوزه چې پهٔ ټوپکه کښې لګولے شي-

سنګړ :(سنګ-ګړ)اسم- واحد- مذکر- شکلنه زمکه- کاڼیزه زمکه- شګلوړه زمکه-

سنول:(سَ-نَ-وَل)مصدرِ متعدي- ښورل- خوځول- حرکت ورکول-

سنون:(سَ-نَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ سنول-

سنونکے:(سَ-نَ-وَون-کے)اسمِ فاعل- جمع سنونکي- مؤنث سنونکې- وګورئ سنول-

سنونګ:(س-نَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سنول-

سنونه:(سَ-نَ-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سنول-

سنوهٔ:(سَ-نَ-وَهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ سنول-

سنه:(سَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- سن- نېټه- موده- کال- عمر- تاریخ-

سنهن:(سن-هن)اسم صفت- توربخن- تورغونے- کلوټ- سکاڼ-

سُنی:(سُ-نی)اسم صفت- (۱)اهلِ سُنت والجماعت- دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دَ سنتو پېروکار- (۲)دَ مسلمانانو هغه فرقه چې دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نه پس حضرت ابوبکر صدیق، حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت علی باالترتیب خلیفه ګان مني-

سنیار:(سَ-یار)اسم- واحد- مذکر- زرګر-

سنیاس:(سَن-یاس)اسم- واحد- مذکر- جوګی توب- سادو توب- فقیری- دَ دنیا نه کناره کشي- (م- سنسکرت)-

سنیاسی:(سَن-یا-سي)اسم صفت- (۱)دَ دنیا نه کناره کش- جوګي- سادو- فقیر- (۲)وګورئ سنداسی- (م- هندي)-

سنیاله(سن-یا-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ مرونهې-

سنیچر :(سَ-نی-چر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خالی ورځ- دَ هفتې ورځ- (۲)یوه ډېره سست رفتاره او منحوسه سیاره- زُحل-

سنېدل:(سَ-نې-دل)مصدرِ لازم- ښېدل- خوځېدل- حرکت ورکولے کېدل-

سنېدلے:(سَ-نې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع سنېدلي- مؤنث سنېدلې- وګورئ سنېدل-

سنېدن:(سَ-نې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ سنېدل-

سنېدنګ:(سَ-نې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ سنېدل-

سنېدنه:(سَ-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ سنېدل-

سنېدونکے:(سَ-نې-دَون-کے)اسمِ فاعل- جمع سنېدونکي- مؤنث سنېدونکې- وګورئ سنېدل-

سنېدهٔ:(سَ-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ سنېدل-

سنې:(سَ-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سوترې- دَ وړي یا سپېنسو نه جوړ نرے پړے- نرۍ رسۍ-

سڼ:(سڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دروغ- دروېغ- (افغانستان)- (۲)وګورئ سونړ- (۳)دَ پوزې دَ سڼ کولو اواز-

سڼا:(سَ-ڼا)اسم صوت- دَ سپېرمو آواز-

سڼکه سڼکه:(سَڼ-که-سَڼ-که)اسم مرکب- هین هین کونه- پهٔ ژړا کښې خلهٔ ورانونه-

سڼو:(س-ڼو)اسم صفت- څڼو- زُلفو-

سو:(سُو)اسم صفت- زخمي- ټپي- ژوبل- پرهرژلے-

سو:(سُو)اسم- واحد- مذکر- (۱)بدي- شر- فساد- (۲)جانب- طرف- سمت-

سوا:(سُ-وا)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم ساګ- (۲)یو قسم وندنے چې کبان پکښې پېښلے کېږي- (۳)سووا- یو قسم ګیاه-

سوا:(سهٔ-وا)اسم- واحد- مذکر- سود- ربا- (افغانستان)-

سوا:(س-وا)صفت- (۱)زیاتي- پرته- پورته- (۲) بغیر- بې لهٔ دې نه-

سوابق:(س-وا-بق)اسم- جمع- مذکر- دَ سابق جمع- وګورئ سابق-

سوابېره:(سو-وا-بې-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ بېرې دَ خاندان یوه ونه او دَ هغې مېوه-

سواحل:(سَ-وا-حل)اسم- جمع- مذکر- دَ ساحل جمع- غاړې- دَ سمندر یا سیند ژۍ-

سواد:(س-واد)اسم صفت- توربخن- توروالے- تور رنګ ته مائل-

سوار:(س-وار)اسم صفت- سور- سپور- پهٔ اس یا بل یو ځناور سورلی کونکے-

سوارکار:(س-وار-کار)اسم صفت- (۱)پهٔ اس دَ سورلی کولو ماهر- (۲)چابک-

سواره:(س-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ غنمو ډنډر- دروزه- دَ غنمو تیلي- (۲)رساله-

سواره څپلی:(سَوا-ره-څپ-لي)اسم- مؤنث- دَ یوې لوبې نوم-

سوارهٔ:(سوا-رهٔ)اسم صفت- دَ سوار جمع- وګورئ سوار-

سوارې:(سَ-وا-رې)اسم- واحد- مؤنث- سورلي- پهٔ اَس، هاتي، موټر، لارۍ یا جهاز وغیره سورېدنه-

سوارې:(سَ-وا-رې)اسم- واحد- مؤنث- دَ نمانځام مېلمستیا- دَ نمانځام دعوت- (افغانستان)-

سوال:(سَوال)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوښتنه- پُښتنه- تپوس- پُرس- (۲)خواست- خېرات غُښته- غُښتنه- (۳)عرض- التجا- درخواست- (م- عربي)-

سوال جواب:(سَوال-ج-واب)اسم مرکب- (۱)چا ته خبر کونه- (۲)بحث- حُجت-

سوالګر:(سَوال-ګر)اسم صفت- سوالګرندے- سوالګرے- سوال کونکے- فقیر- ګدا- خېرات غښتونکے-

سوالګرندے:(سَوال-ګَرن-دے)اسم صفت- سوالګر- سوالګرے- سوالي- خېرمار- چړمار-

سوالګرے:(سَوال-ګهٔ-رے)اسم صفت- خېرمار- سوالي- حاجتمند- سوالګر- سوالګرندے-

سوالي:(سَوا-لي)اسم صفت- سوال کونکے- فقیر- ګدا- خېرات غښتونکے-

سوالگر- سوالگرندے- سوالگرے-

سوالي خور:(سوا-لي-خور)اسم صفت- سوالیندک- مفت خور- تیارخور-

سوالیندک:(سوا-لین-دک)اسم صفت- وګورئ سوالي خور-

سوالیه:(سوا-لي-یه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پوښتنه- پښتنه- استفهام- تپوس- (۲)دَ سوال پښتلو نښه (؟)-

سوان:(سوان)اسم- واحد- مذکر- دَ اُسپني مښلو یوه فولادي آله- دَ چاړې چاقو یا نور دَ داسې څیزونو تېرهٔ کولو آله-

سوانح:(سَ-وا-نح)اسم- واحد- مذکر- دَ ژوند حالات- دَ ژوند لیک- دَ سانحه جمع- (م- عربي)-

سوانح عمري:(سَ-وا-نح-عُم-ري)اسم- واحد- مؤنث- دَ چا دَ ژوند حالات-

سوانح نګار:(سَ-وا-نح-ن-ګار)اسم صفت- دَ چا دَ ژوند حالات لیکونکے-

سوانده:(سوان-ده)اسم صفت- سوے لوے- لوغړن- نیم سوخته-

سوان کاري:(سوان-کا-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ سوان بور- مغه بوره چې دَ تانبې دَ سوانولو نه ودرېږي-

سوانګ:(سوانګ)اسم- واحد- مذکر- دَ چا نقل کونه- دَ چا پېښې کونه- دَ شکل او جامې بدلونه-

سوانګ:(سَ-وانګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غنمو دَ تېغو نه پخېدونکې یو قسم حلوه- (۲)نقل- پېښې- جادو- ټقاله-

سوانګے:(سوانګ-ګے)اسم صفت- جادوګر- منتري- نقلي- مسخرې کونکے- اداکار- (افغانستان)-

سوانه:(سَ-وا-نه)اسم- واحد- مؤنث- آسانتیا- آساني- سواني-

سواني:(سَ-وا-نې)اسم- واحد- مؤنث- آساني- سوانه-

سواني:(س-وا-نې)اسم- واحد- مؤنث- زیاتي- سر دَ پاسه- وګورئ سوا-

سواني خور:(س-وا-نې-خور)اسم صفت- سودخور- سودمار- دَ سود کاروبار کونکے-

سوب:(سوب)اسم- واحد- مذکر- حاضر- موجود- پهٔ طمع- پهٔ انتظار-

سوب:(سَ-وَب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سبب-

سوب:(سَ-وَب)اسم- واحد- مذکر- چاره- علاج- (افغانستان)-

سوبت:(سو-بت)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېښه- پهٔ جمع خوراک کونه- (۲)تفریح کونه-

سوب ګیر:(سَ-وَب-ګیر)اسم صفت- چاره ساز- مددګار- کار ویستونکے-

سوبله:(سوب-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شوبله-

سوبمن:(سَ-وَب-مَن)اسم صفت- بریالے- فاتح- کامران- مرادمن-

سوبه:(سو-به)اسم- واحد- مؤنث- مراد- مقصد- خواهش- غښته-

سوبے:(سو-بے)اسم- ساګ- سابهٔ-

سوپ:(سوپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ دروازې دُرشل- (۲)یو قسم کپړه چې پهٔ مختلفو رنګونو کښې جوړېږي- (۳)ښوروا- شوروا- (م- انګریزي)-

سوپره:(سُوپ-ره)اسم- واحد- مؤنث- کونه- مقعد- سومبې- دَ لویو بولو اندام-

سوپرے:(سوپ-رے)اسم صفت- (۱)کوني- مفعول- کونه ورکونکے- (۲)نامرد- رذیل-

سوپه:(سو-په)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سوټه ۱-

سوپنه:(سو-پهٔ-نه)اسم صفت- پواړه- بدرنګه- ناقابله (ښځه)-

سوپې:(سو-پې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بیزو- شادو- (۲)کشکره- کیشکره-

سوپے:(سو-پے)اسم- واحد- مذکر- دَ سوپې مذکر- بیز- دَ بیزوګانو نر جنس-

سوتره:(سُوت-ره)اسم صفت- پاک- صاف- صفا- سُتره-

سوتره صفا:(سُوت-ره-ص-فا)اسم مرکب- پاک و صاف- صفاسوتره-

سوتري:(سُوت-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ بوجۍ ګنډلو نرے مزے- سوتلې-

سوتل:(سو-تل)فعل- ساتل- خوشحالول-

سوتلې:(سُوت-لې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سنې- ځنې- دَ سُڼو مزے یا ړېر نرے پړے-

سوټن:(سو-ټن)اسم- واحد- مذکر- چوس مار سپے- مغه سپے چې بوی وهي-

سوټونه:(سو-ټو-نه)اسم- جمع- مذکر- زبېرګی- زوبرګی- زګېروي- فریادونه-

سوټ:(سُوټ)اسم- واحد- مذکر- جوړه جامه- (م- انګریزي)-

سوټ:(سَ-ووټ)اسم صفت- دَ څیزونو ساتونکے- (افغانستان)-

سوټ بوټ:(سوټ-بُوټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سخت- سوخت- (۲)پهٔ قهر- پهٔ غصه- (۳)سر، پېښې او لاسونه یوځاې کونه- (۴)فیشن- ړول-

سوټکه:(سو-ټه-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ جوارو زړے-

سوټکے:(سوټ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم اغزن بوټے- (۲)دَ حد ټاکلو نښه- (افغانستان)-

سوټمار:(سُوټ-مار)اسم صفت- (۱)بنجاري- مغه سړے چې کلیو کښې دَ منیاري سامان خرڅوي- (۲)وګورئ سوټن-

سوټن:(سو-ټن)اسم صفت- سوټمار- بې کاره- حقیر- یرندوکے- غلن- ډرپوک-

سوټه:(سُو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- فُضله- سوپه- دَ ځارو فُضله-

سوټه:(سو-ټه)اسم- واحد- مذکر- دَ جوارو مغه توکه چې پخه نهٔ وي- شخوله لرونکے وړے- (افغانستان)-

سوټه لمے:(سُو-ټه-له-مے)اسم صفت- (۱)لټ او ناراسته ځاروے- (۲)ټمبل مخے او بې ډوله سړے-

سوټے:(سو-ټے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لرګی غټه ډنډه- (۲)چقماق- بکره-

سوجي:(سُو-جي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم زاړهٔ اوړهٔ چې حلوه ترې پخولے شي-

سوخل:(سُو-خَل)مصدر متعدي- سوخول- سوزول- پهٔ څهٔ څیز اور بلول-

---

ئ (څي-رل)، ې (هې-ره-وَل)، ی (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

لمبه کول- ځه ځیز پهٔ اور کښې سوزول-

سوخلے:(سو-خهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سوخلی- مؤنث سوخلې- وګورئ سوخل-

سوخند:(سو-خند)صفت- (۱)سوخېدونکے- سوونکے- (۲)سېزونکے- سوخونکے-

سوخنګ:(سو-خنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوخل-

سوخنه:(سو-خهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوخل-

سوخول:(سو-خ-وَل)مصدر متعدی- سېزل- سوزول- اوور وراچول- اور زرته کول- وګورئ سوخل-

سوخولے:(سو-خ-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سوخولی- مؤنث سوخولې- وګورئ سوخول-

سوخون:(سو-خ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخونکے:(سو-خ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سوخونکی- مؤنث سوخونکې- وګورئ سوخول-

سوخونګ:(سو-خ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخونه:(سو-خ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخوهٔ:(سو-خ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخېدل:(سو-خې-دَل)مصدر لازم- پهٔ ځهٔ ځیز اُور لګېدل- پهٔ چا اُور لګېدل- لمبه کېدل- اور اخستل- سول- سوزېدل-

سوخېدلے:(سو-خې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ سوخېدل-

سوخېدن:(سو-خې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سوخېدنګ:(سو-خې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سوخېدنه:(سو-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سوخېدونکے:(سو-خې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سوخېدونکی- مؤنث سوخېدونکې- وګورئ سوخېدل-

سوخېدهٔ:(سو-خې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سوچ:(سوچ)اسم- واحد- مذکر- عقل- فکر- پام- پوهه- خیال- تصور-

سوچه:(سو-چه)اسم صفت- (۱)خالص- صفا- اصلی- (۲)دَ رېښمو نه جوړه کپړه-

سوچه توب:(سو-چه-توب)اسم- واحد- مذکر- پاکوالے- صفا والے- اصلی والے- خالص والے-

سوچه والے:(سو-چه-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سوچه توب-

سوچی:(سو-چی)اسم صفت- سوچ کونکے- فکر کونکے- تشویش کونکے-

سوخت:(سوخت)اسم- واحد- مذکر- سخت- (۱)قهر- غصه- (۲)درد- خوږ- (۳)سوزېدلے-

سوختر:(سوخ-تر)اسم- واحد- مذکر- سوزېدنه- سوزونه-

سوختګان:(سوخ-ت-ګان)اسم صفت- جمع- مذکر- سوی- عاشقان-

سوختول:(سوخ-ت-وَل)مصدر متعدی- تاؤ تېرول- غصه کول- پهٔ قهر کول- ذهنی عذاب ورکول-

سوختولے:(سوخ-ت-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سوختولی- مؤنث سوختولې- وګورئ سوختول-

سوختون:(سوخ-ت-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سوختول-

سوختونکے:(سوخ-ت-وون-کے)اسم فاعل- جمع سوختونکی- مؤنث سوختونکې- وګورئ سوختول-

سوختونګ:(سوخ-ته-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوختول-

سوختونه:(سوخ-ت-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوختول-

سوختوهٔ:(سوخ-ت-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوختول-

سوخته:(سوخ-ته)صفت- (۱)سوے- سوزېدلے- کباب شوے- (۲- اسم)هغه سکارهٔ چې دَ چیلم پهٔ سرخانه کښې ایښوے شی- سکور-

سوختېدل:(سوخ-تې-دَل)مصدر لازم- تاؤ تېرېدل- تاؤ خوړل- غصه کېدل- پهٔ قهر کېدل-

سوختېدلے:(سوخ-تې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سوختېدلی- مؤنث سوختېدلې- وګورئ سوختېدل-

سوختېدن:(سوخ-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سوختېدل-

سوختېدنګ:(سوخ-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوختېدل-

سوختېدنه:(سوخ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوختېدل-

سوختېدونکے:(سوخ-تې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سوختېدونکی- مؤنث سوختېدونکې- وګورئ سوختېدل-

سوختېدهٔ:(سوخ-تې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوختېدل-

سوخر:(سو-خَر)اسم- واحد- مذکر- بُغض- کینه- حسد- عناد- (افغانستان)-

سوخړه:(سوخ-ړه)اسم- واحد جمع- مؤنث- دَ سرې غوښې بوټی- دَ بې مېږکی غوښې بوټی-

سوخړی:(سوخ-ړی)اسم صفت- واحد- مؤنث- ډېر خوړین- ډېر پوخ- دَ خوړین والی دَ وجې لېټی شوے- (افغانستان)-

سوخکه:(سوخ-که)اسم- واحد- مؤنث- نله- جابه-

سوخل:(سو-خَل)مصدر متعدی- سوخول- (۱)منډل- تخته کول- (۲)سُورے کول- (۳)چوخول- چخول-

سوخول:(سو-خ-وَل)مصدر متعدی- سوخل- (۱)منډل- تخته کول- کښېمندل- کېمنډل- (۲)سُورے کول- (۳)څوخول- چخول-

سوخولے:(سو-خ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سوخولی- مؤنث سوخولې- وګورئ سوخول-

سوخون:(سو-خ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخونکے:(سو-خ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سوخونکی- مؤنث سوخونکې- وګورئ سوخول-

سوخونګ:(سو-خ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخونه:(سو-خ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخوهٔ:(سو-خ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوخول-

سوخے:(سو-خې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ږګه- ذکر- غېږ- د ماشومانو خوټه-

سوخېدل:(سو-خې-دل)مصدر لازم- (۱)سورے سورے کېدل- (۲)ږکېدل- کېمنډلے کېدل- چوخېدل- څوخېدل-

سوخېدلے:(سو-خې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سوخېدلی- مؤنث سوخېدلې- وګورئ سوخېدل-

سوخېدن:(سو-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سوخېدنګ:(سو-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سوخېدنه:(سو-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سوخېدونکے:(سو-خې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سوخېدونکي- مؤنث سوخېدونکې- وګورئ سوخېدل-

سوخېدهٔ:(سو-خې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوخېدل-

سود:(سود)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګټه- فائده- نفع- د زیان ضد- (۲)هغه اضافي رقم چې قرض خوا ته د قرض واپس کولو سره ورکولے شي-

سود:(سود)اسم- واحد- مذکر- (۱)تسکین- دمه- آرام- ډاډ- (۲)شعور- عقل- هوش-

سودا:(سو-دا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خرید و فروخت- اخستنه او خرڅونه- (۲)غم- فکر- تلوسه- جمع سوداګانې-

سوداګر:(سو-دا-ګر)اسم صفت- تاجر- هغه څوک چې تجارت کوي-

سوداګری:(سو-دا-ګهٔ-ری)اسم- واحد- مؤنث- د سوداګر کار او پېشه-

سودانی:(سو-دا-نی)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- دیوانه- لېونے- وسواسی- فکرژن-

سودانی توب:(سو-دا-نی-توب)اسم- واحد- مؤنث- د سودانی حالت- د جنون حالت-

سودبود:(سود-بود)اسم مرکب- نفع نقصان- ښهٔ او بد- خودبود-

سودخوارهٔ:(سود-خوا-رهٔ)اسم- جمع- مذکر- وګورئ سودخور-

سودخور:(سود-خور)اسم صفت- سود اخستونکے- ځان ته فائده او بل ته تاوان رسونکے- جمع سودخوارهٔ-

سود سودا:(سود-سو-دا)اسم- جمع- مؤنث- سودا- خرڅ- سوږ سپېرکي- د بازار ټکه ټوکه-

سودکن:(سود-کن)اسم صفت- ګټور- سودمن- فائده من-

سودکنه:(سود-کَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سوده- راحت- اسودګی- (۲- صفت)وګورئ سودکن-

سودمن:(سود-من)اسم صفت- ګټور- فائده من- مُفید- ښهٔ-

سودمند:(سود-مند)اسم صفت- وګورئ سودمن-

سودمندی:(سود-من-دی)اسم- واحد- مؤنث- کامیابی- سودمنی- ګټورتوب- ښهٔ والے-

سودمنی:(سود-مه-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سودمندی-

سوده:(سو-ده)اسم صفت- (۱)هغه څاروے چې د ښپو نوکو نه ئې سولېدلی وی- (۲)بیخی- بالکل- غنډ- ټول-

سوده:(س-و-ده)اسم- واحد- مؤنث- د مزری جوړه ټوکری- شکری- (افغانستان)-

سوده:(سو-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سود- تسلی- اطمینان- (۲)ساده- بوله-

سودا:(سو-دا)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)یو کیمیائی مواد چې په شربتونو وغېره کښې استعمالولے شي- (۲)دوه مختلف قسمه سپین پوډر چې یو د جامو وینځلو او بل د اوړو وغېره د پستولو د پاره پکارولے شي-

سوډر:(سو-ډر)اسم- واحد- مذکر- (۱)خنزیر- سرکوزے- سور- (۲- صفت)مجازاً لټ غوښے- (۲)بې ادبه سړے-

سوږه:(س-ږ-ږه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لاپه- لاف- باټه- دروغ خبره- ږوږه- (۲)چل- ټګی-

سوږے:(س-ږ-ږے)اسم صفت- لافی- ږوږن- لافو- لاپو-

سور:(سور)اسم- واحد- مذکر- (۱)سور رنګ- (۲)په زینو سور- مؤنث سره-

سور:(سور)اسم- واحد- مذکر- سوار- هغه اس، هاتی یا بل د سورلی په څهٔ څیز سور- سپور-

سور:(سور)اسم صفت- تلېدلے- وریت شوے- په غوړیو کښې ترڅکېدلے-

سور:(سو-ور سور)اسم- واحد- مذکر- د ګیدړ نه لږ غټ خړ رنګ لرونکے یو ناپاکه او مردار ځناور- سرکوزے- خنزیر- بدځناور-

سوراړ:(سو-راړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دشت- صحرا- بې آب و ګیا بیابان- (۲)سخته ګرمی- (۲)د ګرمی د موسم ډېره ګرمه میاشت-

سوراړا:(سو-را-ړا)اسم- سپېره ډاګه- دشت- صحرا- سوراړ-

سوراغزے:(سور-اغ-زے)اسم- واحد- مذکر- یو غرنیز او اغزن بوټے- سور ازغے-

سوراملے:(سور-ام-لے)اسم- یو قسم سره املی-

سوران:(سو-ران)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګرم باد- ګرمه هوا- (۲)یو مرض چې د ګرمی له کبله پېدا کیږی او مریض پکښې ډېر زیات تږے کیږی- (۳)چغې سورې- هائې کوکار- ویر- ژړا انګولا- (۴)حرص- لالچ-

سورانه:(سو-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- کوکاره-

سورانے:(سو-را-نے)اسم صفت- ویرژن- فریاد کونکے- ساندې ویونکے- ماتم کونکے- چغې وهونکے- چغړلو-

سوراڼا:(سو-را-ڼا)اسم صفت- وګورئ سوربوټے-

سورباتینګن:(سور-با-تینګ-ګن)اسم- واحد- مذکر- سورباټینګڼ- ټماټر- جمع سرهٔ باټینګڼ-

سوربخن:(سور-ب-خن)اسم صفت- سور رنګ ته مائل- پیکه سور- تت سور-

سوربکری:(سور-بک-ری)اسم- واحد- مؤنث- کاسیره-

سوربلے:(سور-ب-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سورپلے-

ئ" (څی-رل)، ئ"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

سوربنې:(سُور-بَ-نې)اسم صفت- وګورئ سوربونې-

سوربونې:(سور-بو-نې)اسم صفت- سوربخن- هغه سړے چې رنګ ئې سُور وی- سوراڼا-

سورپټکنې:(سُور-پَ-ټک-نې)اسم- سره خاوري- سره خاوره- سره پټکنې- سره پټکرې-

سورپلے:(سُور-پَ-لے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم واښهٔ چې دَ غنمو پهٔ فصل کښې راشین کیږي- سوربلے-

سورپور:(سُور-پور)اسم صفت- (۱)تریخ- تریو- قهر پهٔ مخه کړے- تندخویه- (۲)پهٔ وینو ککړ- پهٔ وینو سور شوے- جمع سرهٔ پرهٔ-

سورپوستے:(سُور-پوس-تے)اسم صفت- (۱)انګریز- فېرنګے- پېرنګے- (۲)هغه څوک چې رنګ او ویښتهٔ ئې سرهٔ وی-

سورت:(سُو-رَت)اسم- واحد- مذکر- سورة- دَ قرآن مجید دَ ۱۱۴ حصو نه یوه حصه- جمع سورتونه-

سورټیکرې:(سُور-ټیک-رې)اسم صفت- (۱)هغه ښځه چې پهٔ سر ئې مرګ ژوبله وُشي- (۲)هغه ښځه چې خاوند ئې پهٔ دُشمنۍ کښې مړ شي- (افغانستان)-

سورخکه:(سُور-خَ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ څرخکه-

سورخُلے:(سُور-خُ-لے)اسم صفت- (۱)خونخوار- ظالم- قتل ته تیار ناست سړے- (۲)غصه ناک- قهرژن-

سورخې:(سُور-خې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زنانهٔ دَ خان سینګارولو پهٔ وخت هغه سور رنګ چې پهٔ شونډو ئې لګوي- (۲)سرلیک- عنوان-

سورخے:(سُور-خے)اسم- واحد- مذکر- دَ غنمو یا کنو دَ فصل یو قسم بیماري چې فصل تباه کوي-

سوردلے:(سُور-دَ-لے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مرغۍ- (افغانستان)-

سوردودک:(سور-دو-دک)اسم- واحد- مذکر- یو قسم سره مرغۍ-

سور ډاګ:(سُور-ډاګ)اسم- دشت- صحرا- مېره-

سورړه:(سو-رَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ یوې مرغۍ نامه-

سورسات:(سُور-سات)اسم- واحد- مذکر- دَ خوراک هغه سامان یا ذخیره چې دَ حکومت لهٔ طرفه دَ فوج دَ پاره پهٔ زور اخستلے کیږي-

سور سالو:(سور-سا-لو)اسم- واحد- مذکر- سور زړوکے- سالو- دَ پېغلو او جینکو دَ پېغلتوب او مستۍ لوپټه-

سورساندے:(سُور-سان-دے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم سور ګل لرونکے واښهٔ چې دَ وچولو نه پس څاروو ته دَ خنې بیماریو دَ پاره ورکولے شي-

سورسانده:(سور-سان-ده)اسم- واحد- مذکر- ساندې ویونکے- زوړ سوران کونکے-

سورسترګے:(سُور-ستر-ګے)اسم صفت- (۱)هغه څوک چې سترګې ئې سرې وی- (۲)غصه ناک-

سورسرے:(سُور-سَ-رے)اسم صفت- هغه څوک چې دَ سر ویښتهٔ ئې سرهٔ وی-

سورغاړے:(سُور-غا-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم وړه مرغۍ- (۲)دَ بټېر یو قسم-

سورکټ:(سور-کټ)اسم- واحد- مذکر- دَ خلې دَ پخېدو یو قسم دوائی-

سورکونړو:(سُور-کُون-ړو)اسم- واحد- مؤنث- هغه جینئ چې وادهٔ یا کوږدن نهٔ وی او خپل پېکے قینچي کوي-

سورکے:(سور-کے)اسم- واحد- مذکر- آلو- نباتاتي نوم سولانم ټیوبراسم -(SOLANUM TUBEROSUM)

سورکے:(سُور-کے)اسم صفت- (۱)سوربخن- سور وزمه- (۲)دَ سور اسم تصغیر-

سورګانے:(سُور-ګا-نے)اسم صفت- وګورئ سوربخن-

سورګړے:(سور-ګهٔ-ړے)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو غرنیز واښهٔ چې څاروي ئې خوري- نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ سرګړے-

سورګلے:(سور-ګُ-لے)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو بوټے چې سُور ګل نیسي او دَ ساګ پهٔ ځائې استعمالیږي- سورګولے-

سورکوکے:(سور-کو-کے)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو قسم ساګ-

سورکولے:(سُور-کو-لے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ساګ- سُورګلے-

سورل:(سُو-رَل)اسم- واحد- مذکر- هغه اَس چې رنګ ئې سور وی-

سورلاسے:(سُور-لا-سے)اسم صفت- آزاري- جنجالي- فسادي- وینې تویونکے- قاتل- هغه څوک چې دَ مقتول پهٔ وینو ئې لاس سرهٔ وی-

سورلان:(سُور-لان)اسم- واحد- مذکر- دَ یو ښهٔ ذات سپے-

سورلکۍ:(سُور-لَ-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم مرغۍ چې سره لکۍ لري-

سورلمنه:(سُور-لَ-مهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه زنانه چې دَ بچې دَ زیږون پهٔ وخت وفات شي- سورلمنې- جمع سورلمنې-

سورلمنې:(سُور-لَ-مهٔ-نې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سورلمنه- (افغانستان)-

سورلمے:(سور-لَ-مے)اسم- واحد- مذکر- دَ نولې یو قسم-

سورلن:(سور-لَن)اسم صفت- سورنے- سایه- سُورین- سورن- سېرن- پهٔ سوري-

سورلنډ:(سور-لنډ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګیدړ- شغال- (۲)شا- پُشت- کوڼه- ړوبي-

سورلنړے:(سُور-لن-ړے)اسم- واحد- مذکر- شغال- ګیدړ-

سورلنی:(سور-لَه-نی)صفت- جمع- (۱)سوارهٔ- سپارهٔ- (۲)دَ سورلۍ- (۲- اسم)تادي- جلتي- هله خله-

سورلی:(سُور-لی)اسم- واحد- مذکر- (۱)هر هغه څیز چې سورلی پرې کېدے شي- (۲)سوربدنه-

سورلے:(سُور-لے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم سپینه نسواري رنګه مرغۍ-

سرمائي:(سر-ما-ئي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سرخي- تازګي- سوروالے- (۲- صفت)سوررنګه- سور رنګ ته نزدې- داسې رنګ چې سُرخۍ ته مائل وی-

سورمخے:(سُور-مه-خے)اسم صفت- هغه څوک چې دَ مخ رنګ ئې سور وی-

سورمل:(سُور-مَل)اسم- واحد- مذکر- په بېديا کښې شين کېدونکے يو قسم واښه-

سورن:(سو-رن)اسم صفت- په سوری- دَ سوری لاندې (۲)دَ سوری بيمار-

سورن:(سُو-رن)اسم- وګورئ سورل-

سورنا:(سور-نا)اسم- واحد- مؤنث- دَ ترخ باجه- سُرنا- سُرنے-

سورناچی:(سور-نا-چی)اسم صفت- سورنا غږونکے- دَ ترخ باجه غږونکے-

سورناک:(سور-ناک)اسم صفت- خوندور- سُرناک- پولے- ښانسته- هغه څيز چې سُر پکښې وی-

سورنجان:(سو-رن-جان)اسم- واحد- مذکر- دَ يوې دوايي نوم-

سورنګ:(سُو-رنګ)اسم- واحد- مذکر- سُرنګ- (۱)نيلی اُس- (۲)زخمی- خوږ- خوږمن- (۳)په غر يا زمکه کښې دننه لار-

سوروالے:(سُور-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سورتوب- سُرخی- سُور رنګ لرنه- (۲)غصه- توروالے-

سوروبره:(سُور-وب-ره)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- سوربخن- سورمائی- سوررنګے- سُرخی ته نزدې-

سوروزمه:(سُور-وَز-مه)اسم صفت- وګورئ سوربخن/سوروبره-

سوروَل:(سُو-رَ-وَل)مصدر- سپړول- دَ سورلی په څيز کښېنول- په اس، هاتی يا بله سورلی کښېنول-

سورون:(سُو-رَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ سوروَل-

سوروَنکے:(سُو-رَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سوروَنکی- مؤنث سوروَنکې- وګورئ سوروَل-

سوروَنګ:(سو-رَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سوروَل-

سوروَنه:(سُو-رَ-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوروَل-

سوره:(سُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه جينۍ چې دَ دوؤ دشمنو پلو منځ کښې دَ روغې راوستو په غرض دَ ظالمې پلې لهٔ خوا مظلومې پلې ته ورکړے شی-

سوره:(سُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- چغه- نعره- ناره- کريکه- کړيکه-

سوره:(سُو-رَه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سورت-

سوری:(سُو-ری)اسم- لويْ جوال- شل-

سوريانګه:(سُور-يانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم وړه زيړرنګې مرغی- زيړکه-

سوريته:(سو-ری-ته/سُور-يه-ته)اسم- واحد- مؤنث- هغه وينځه چې دَ خپل مالک نه يې اولاد وُشی-

سورې:(سُو-رې)اسم- جمع- مؤنث- چغې- نارې- کريکې- کړيکې- دَ سُوره جمع-

سورېدل:(سُو-رې-دل)مصدر- په اس، هاتی يا بله سورلی کښېناستل-

سورېدن:(سُو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سورېدل-

سورېدنګ:(سُو-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سورېدل-

سورېدنه:(سُو-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سورېدل-

سورېدونکے:(سُو-رې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سورېدونکی- مؤنث سورېدونکې- وګورئ سورېدل-

سورېدهٔ:(سُو-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سورېدل-

سوری:(سُو-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ "سُوری" مؤنث- وګورئ سورے-

سوری:(سُو-ری/سهٔ-وهٔ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ اُس دَ زين عرق ګير- توغل- توغم- شاګوړے- (افغانستان)-

سورے:(سُو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوړه- غار- سوروے- (۲)مجازاً- کونی- مفعول- مؤنث سوری-

سورے:(سو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سېورے- سايه- دَ مادې هغه عکس چې دَ نمر لهٔ کبله په زمکه ليدے شی- (۲)دَ ماشومانو يو قسم بيماری-

سورے سورے:(سُو-رے-سُو-رے)اسم صفت- سُوړې سُوړې- هغه څيز چې پکښې ډېر سوری وی- لکه غلبېل- (۲)دَ ټوپکو په ګوليو لګېدلے-

سوړ:(سوړ)اسم صفت- (۱)يخ- سرد- دَ تود يا ګرم ضد- (۲)مجازاً لټ او ناراسته سړے-

سوړا:(سو-ړا)اسم صفت- ناراسته او وېرېدونکے سړے-

سوړ باد:(سوړ-باد)اسم- واحد- مذکر- (۱)يخ باد- (۲)غم او مصيبت-

سوړ بوړ:(سوړ-بوړ)اسم صفت- (۱)پرېشانه- غمګين- (۲)مچو خوړلے-

سوړ بوئ:(سوړ-بوئ)اسم- واحد- مذکر- بدبوئ- سخا بوئ- ګنده ورم-

سوړ پوړ:(سوړ-پوړ)اسم صفت- (۱)ډېر زيات يخ- بېخی يخ- (۲)بې مينې- بې مهره- بې محبته-

سوړ تود:(سوړ-تود)اسم صفت- تود سوړ- يخ ګرم- سړه توده-

سوړتيا:(سوړ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سوړوالے-

سوړسک:(سوړ-سک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سوکړک-

سوړ سمخ:(سوړ-س-مخ)اسم صفت- بېخی سوړ- بالکل سوړ- ډېر زيات سوړ- سوړنګوړ- سوړ پوړ-

سوړفکره:(سوړ-فک-ره)اسم صفت- سوړدمے- ناراسته- لټ- سست- غلے-

سوړميرے:(سوړ-مي-رے)اسم صفت- کټه مير- کټه ميرے- سنګدل- وحشی-

سوړن:(سو-ړن)اسم صفت- دروغژن- دروغجن- دروغ ويونکے- ډوزن- لاغو-

سوړوالے:(سوړ-وا-لے)اسم صفت- سوړتيا- سړښت- سوړتوب- دَ سړېدو يا يخېدو حالت-

سوړه:(سو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غار- سُورے- (۲)مقعد- دَ لويو بولو ځای-

سوړی:(سو-ړی)اسم- بوټ سوری- بوټ سوړی-

سوړيز:(سُو-ړيز)اسم صفت- اواره ګرد- لوفر- فضول ګرځېدونکے-

سوړې:(سو-ړې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)دروغ وېنا- لاپې- ډوزې- (۲)دَ سُوړه جمع-

سوړے:(سُو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سُورے- سوړه- (۲)اوږده لکی لرونکې

ئ" (ځی-رل)، "ې"(هې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

یوه خړ رنګې مرغۍ-

سوږے سمبورے:(سو-ږے-سم-بو-رے)اسم مرکب- وګورئ سمبورے-

سوز:(سوز)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوزېدنه- سوے- (۲)درد- تکلیف- غم- پرېشانی- (۳)د غم یا الم سندره-

سوزاک:(سو-زاک)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ناروغی چې د وړو بولو اندام پکښې زخمي کیږي او بیا د هغې زخم له کبله سوزي-

سوزان:(سو-زان)اسم صفت- سوزونکے- سوزناک-

سوزبر:(سوز-بر)اسم- جمع- مذکر- سبزبرګ- شنه پاڼه- شنه پخه-

سوزبخن:(سوز-ب-خن)اسم- وګورئ خرخ-

سوزش:(سو-زش)اسم- واحد- مذکر- سوے- سوخت- سوز- سوزېدنه- تاؤ- درد- تکلیف- (م- فارسي)-

سوزک:(سو-زک)اسم- واحد- مذکر- سوزاک- یو مرض چې تشې متیازې پکښې سوزي-

سوزکے:(سو-ز-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم شین بوټے چې د بدن په څه اندام پورې ومښلے شي نو سوزوي ئې-

سوزل:(سو-زل)مصدر- سوزول- سول-

سورمه:(سوز-مه)اسم- واحد- مؤنث- سپېرمه- سپېمه- جمع سوزمې-

سوزن:(سو-زن)اسم- واحد- مذکر- (۱)ستن- (۲)د تېرې څوکې څیز لکه توره وغېره-

سوزناک:(سوز-ناک)اسم صفت- افسوس ناک- دردناک- سوځونکے- سوزان-

سوزنده:(سو-زن-ده)اسم صفت- سوزونکے- سېزونکے- آتشین- سوزان-

سوزنی:(سوز-نی)اسم- واحد- مؤنث- په کټ یا بستره د غوړولو څادر-

سوزني:(سو-ز-ني)اسم صفت- سوسن رنګ لرونکے څیز-

سوزول:(سو-ز-ول)مصدر متعدي- په اور کښې لمبه کول- بلول- اور لګول- اور اچول- سېځل-

سوزون:(سو-ز-ون)حاصل مصدر- وګورئ سوزول-

سوزونکے:(سو-ز-وون-کے)اسم فاعل- جمع سوزونکي- مؤنث سوزونکې- وګورئ سوزول-

سوزونګ:(سو-ز-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سوزول-

سوزونه:(سو-ز-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوزول-

سوزه:(سو-زه)اسم- واحد- مؤنث- د قمیص پېوند- د جامو د شلېدلی ځاې پېوند-

سوزېدل:(سو-زي-دل)مصدر لازم- په اور لمبه کېدل- بلېدل- اور لګېدل- اور اچولے کېدل-

سوزېدلے:(سو-زي-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سوزېدلی- مؤنث سوزېدلې- وګورئ سوزېدل-

سوزېدلے:(سو-زي-دهٔ-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- عاشق-

سوزېدن:(سو-زي-دن)حاصل مصدر- وګورئ سوزېدل-

سوزېدنګ:(سو-زي-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوزېدل-

سوزېدنه:(سو-زي-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوزېدل-

سوزېدونکے:(سو-زي-دون-کے)اسم فاعل- جمع سوزېدونکی- مؤنث سوزېدونکې- وګورئ سوزېدل-

سوزېدهٔ:(سو-زي-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوزېدل-

سوسړ:(سو-سړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اُبو سور- دریابی خنزیر- (۲- صفت)وړسترګے او رذیل سړے-

سوسکارنه:(سوس-کا-رهٔ-نه)اسم- وګورئ انګول- څېړنه- تلاش- سونګ وهنه-

سوسکېدل:(سوس-کي-دل)مصدر لازم- (۱)رېږدېدل- رپېدل- ړچېدل- لړزېدل- (۲)غلې غلې ژړا کول-

سوسکېدنګ:(سوس-کي-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوسکېدل-

سوسکېدنه:(سوس-کي-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوسکېدل-

سوسکېدونکے:(سوس-کي-دون-کے)اسم فاعل- جمع سوسکېدونکی- مؤنث سوسکېدونکې- وګورئ سوسکېدل-

سوسکېدهٔ:(سوس-کي-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوسکېدل-

سوسمبر:(سو-سم-بر)اسم- واحد- مذکر- وېلنے- وبلنے- صحرائے وېلنے-

سوسن:(سو-سن)اسم صفت- (۱)اوږد- لوړ قدے- په ونه اوچت- (۲- اسم)زمبک-

سوسني:(سو-سه-ني)صفت- د سوسن رنګ په شان- تت تور رنګ- بانجني رنګ-

سوسو:(سو-سو)اسم صوت- سه سه- د یخنۍ په وجه له خلې وتونکے اواز-

سوسی:(سو-سی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم رېښمینه کپړه- (افغانستان)-

سوسے:(سو-سے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خړ رنګے ازغن بوټے چې د سوځولو د پاره پکارولے شي-

سوښته:(سوښ-ته)اسم- وښکے-

سوښتے:(سوښ-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وښکے- وربښکے- د خُلې کُنج- (۲)د جولا ماکو- ماکو-

سوغ:(سوغ)اسم صوت- (۱)د پوزې سُوں کولو آواز- سغ- (۲)لږ او کم څیز- چونډی-

سوغات:(سو-غات)اسم- واحد- مذکر- تحفه- ډالی- پېرزوینه- زړهٔ غُښتنه- خونی-

سوغالے:(سو-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- د سوئې غار- د سوئې کور- د سوي کور-

سوغخے:(سوغ-خے)اسم- واحد- مذکر- هغه ټوکری چې سر پرې بندولے شي- سرپوښه ټوکری-

سوغړ:(سو-غړ)اسم صفت- لغړ- بربنډ- لغړ سوغړ- داسې بربنډ چې په وجود رینجه پاتې نهٔ وی-

سوغل:(سو-غل)مصدر- (۱)د پوزې نه د سوغ اواز وتل- سونېدل-

(۲)سغبدل- (۳)وګورئ سوغول-

سوغن:(سو-غن)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه ګړ يا پسۀ چې د يخنۍ وهلو لۀ کبله د پوزې نه د سوغ سوغ آواز وباسي- (۲)حاصل مصدر- وګورئ سوغل-

سوغنے:(سوغ-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه آس چې د ډېر کار کولو پۀ وجه خوار وی خو وجود يې کلک او مضبوط وی-

سوغول:(سو-غ-ول)مصدر- (۱)سونېول- وګورئ سوغل- (۲)پۀ پوزه څۀ څيز راکښل- (۳)سرحول- (۴)پۀ زور سره څۀ څيز غرخول-

سوغولے:(سو-غ-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سوغولی- مؤنث سوغولې- وګورئ سوغول-

سوغون:(سو-غ-ون)حاصل مصدر- وګورئ سوغول-

سوغونکے:(سو-غ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سوغونکی- مؤنث سوغونکې- وګورئ سوغول-

سوغونګ:(سو-غ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سوغول-

سوغونه:(سو-غ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوغول-

سوغوۀ:(سو-غ-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ سوغول-

سوغېدل:(سو-غې-دل)مصدر لازم- (۱)سونېدل- (۲)پۀ پوزه څۀ څيز راکښلے کېدل- (۳)سرخېدل- (۴)پۀ زور سره څۀ څيز غرخېدل-

سوغېدلے:(سو-غې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سوغېدلی- مؤنث سوغېدلې- وګورئ سوغېدل-

سوغېدن:(سو-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سوغېدل-

سوغېدنګ:(سو-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوغېدل-

سوغېدنه:(سو-غې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوغېدل-

سوغېدونکے:(سو-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سوغېدونکي- مؤنث سوغېدونکې- وګورئ سوغېدل-

سوغېدۀ:(سو-غې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ سوغېدل-

سوفار:(سو-فار)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ستن سورے- سوم- سيم- (۲)د غشي د هغه سر سورے کوم چې پۀ کمان کښې کېښوے شي- کيټکے- (م- فارسي)-

سوق:(سوق)اسم- واحد- مذکر- (۱)شړل- (۲)بيلول- (۳)بوول- بوتلل- بيول- لېږل- (۴)حديث وئيل او بيانول- (افغانستان)- (م- فارسي)-

سوقلے:(سو-ق-لے)اسم صفت- تنکه پاجامه چې پۀ وجود پورې نښتې وی-

سوک:(سوک)اسم- واحد- مذکر- موټے- د لاس د پنجې د راغونډېدو حالت- موکه-

سوک:(سوک)اسم- واحد- مذکر- يخ باد- يخ شمال- (افغانستان)-

سوکا:(سو-کا)متعلق فعل/صفت- پۀ آرام- پۀ تسلی- پۀ جمع زړۀ- پۀ اطمينان-

سوکاله:(سو-کا-له)اسم صفت- (۱)خوشحاله- هغه څوک چې خوشحال او مطمئن وی- (۲)ناراسته- لټ-

سوکالي:(سو-کا-لي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سکالي- ارامي- خوښي-

سوک څپېړه:(سوک-څ-پې-ړه)اسم- معمولي جګړه-

سوکړ:(سو-کړ)اسم- واحد- مذکر- شوم- کنجوس- بخيل-

سوکړ:(سو-کړ)اسم صفت- (۱)هغه سړے چې ږيره يې بوچې وی- (۲)د وچتې او نرۍ ږنې خاوند-

سوکړک:(سوک-ړک)اسم- واحد- مذکر- پياځه- د جوارو ږوږی- جوارے-

سوکره:(سوک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وچ کالی- خشک کالی- (۲)هغه زمکه چې اوبۀ يې نۀ وی-

سوککه:(سو-ک-که)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم ګياه-

سوکلے:(سو-ک-لے/سوک-لے)اسم صفت- لټ او ناراسته سړے- آرام طلبه سړے-

سوک موک:(سوک-موک)اسم/متعلق فعل- سوټ بوټ- غنډ منډ-

سوکول:(سو-ک-ول)مصدر متعدی- وګورئ اوسکارل-

سوکه:(سو-که)اسم- واحد- مؤنث- ورو- پۀ قرار- پۀ قلار- پۀ دمه- پۀ مزه- پۀ ساه-

سوکه:(سوۀ-که) اسم- واحد- مؤنث- سوے لرګے- سوے-

سوکي:(سو-کي)اسم- واحد- مؤنث- تنګونه- پۀ عذابونه- تکليف ورکونه-

سوکي:(سۀ-و-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خوانکه- هغه دانه چې د بلوغ پۀ وخت د نوی ځوان پۀ مخ راخيژي-

سوکے:(سو-کے)اسم- واحد- مذکر- د ببېړيو يو قسم لوبه-

سوګ:(سوګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پرخه- شبنم- (۲)غم- پرېشاني- د چا پۀ غم غمرازی کونه- وير- ماتم-

سوکا:(سو-کا)اسم- ساتنه- حفاظت کونه- څوکي کونه-

سوکټ:(سو-کټ)اسم صفت- بخيل- شوم- کنجوس-

سوکړ:(سو-کړ)اسم صفت- وګورئ سوکټ-

سوکړمار:(سو-کړ-مار)اسم صفت- لاپو- لافو- لاغکر- پوزن-

سوکړه:(سو-کۀ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پوزه- لافه- لاپه- عبث خبره- جمع سوکړې-

سوګل:(سو-ګل)اسم- واحد- مذکر- پانپوښ- سوګله- سوګلی- پوستکے- پوټکے- څرمن- (افغانستان)-

سوګلونے:(سوګ-لو-نے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم زيره او بې وزنه تيره- پيلو-

سوګله:(سو-که-له)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم پېزار چې د اومې (کچه) څرمنې نه جوړيږی- وګورئ سوګل- (افغانستان)-

سوګلی:(سوګ-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وګورئ سلکی- (۲)څپلی- کېړی- وګورئ سوګل-

سوګند:(سو-ګند)اسم- واحد- مذکر- قسم- د خبرې تصديق او رښتنولي

دَ پاره دَ مذهبی مقدساتو ذکر کونه- لوړه- لو- (م- فارسی)-

سوګندی:(سو-ګن-دی)اسم صفت- قسمی- چې قسم یا سوګند ورکړے شوے وی-

سوګوار:(سوګ-وار)اسم صفت- ماتمی- غم زده- غم زپلے- ویر ژړلے- (م- فارسی)-

سوکه:(سو-که)اسم- وګورئ خوندی-

سوکئ:(سو-کئ)اسم- جمع- ماشی- مچان-

سوګ یال:(سوګ-یال)اسم- جنازه- دَ جنازې بهیر-

سول:(سول)مصدر- سوزول- سوځل-

ښول:(سول)اسم- واحد- مذکر- زیات حرص- ډېره زیاته طمع-

سولاغ:(سو-لاغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)داغ- نشان- نښه- تپے- (۲)سورے- سروے-

سولاغه:(سو-لا-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بوقه- پول- (۲)غلبېل- جمع سولاغې-

سولاند:(سو-لاند)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سولند-

سولټ:(سو-لټ)اسم صفت- سُنت شوے- ختنه شوے-

سولن:(سو-لن)اسم صفت- لالچی- حریص- بدحرصه- لېوال- کرزتی- سرابن- الوی-

سولند:(سو-لند)اسم صفت- (۱)سولاند- حریص- چوسمار- سولن- (۲)سوزېدلے-

سولندتوب:(سو-لند-توب)اسم- واحد- مذکر- سولندوالے- سرابنتوب- څوسن توب-

سولندوالے:(سو-لند-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سولندتوب-

سولندے:(سو-لن-دے)اسم- عجول- تلوارے- تلوار کرندے- تلوسی-

سولنډه:(سو-لن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- مانده- شېله- خوړ- (افغانستان)-

سولوغ:(سو-لوغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سولاغ- داغ- نښه- (۲)سورے- جمع سولوغونه-

سولول:(سو-ل-ول)مصدر- سرابنول- تحریصول- څوسمارول-

سولول:(سو-ل-ول)مصدر- (۱)مړل- مښل- (۲)زدوېل- زدوول- زدېېل- (۳)الرې کول- ایسته کول- (۴)خرابول- لهٔ کاره وېستل-

سولولے:(سو-ل-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سولولی- مؤنث سولولې- وګورئ سولول-

سولون:(سو-ل-ون)حاصل مصدر- وګورئ سولول-

سولونکے:(سو-ل-ون-کے)اسم فاعل- جمع سولونکی- مؤنث سولونکې- وګورئ سولول-

سولونګ:(سو-ل-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سولول-

سولونه:(سو-ل-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سولول-

سولوهٔ:(سو-ل-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سولول-

سوله:(سو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)صلح- روغه- جوړه- (۲)دَ جنګ جګړې ختمونه-

سوله:(سو-له)اسم- واحد- مؤنث- حرص- لالچ- طمع- لېوالتوب- سرابنتوب-

سوله:(سهٔ-وهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- کباب- وریت شوے څیز-

سوله:(س-له)اسم- واحد- مؤنث- منا- څپر- جونګړه-

سوله بوله:(سو-له-بو-له)صفت/متعلق فعل- بې وجې- بې سببه- بې علته-

سولی:(سو-لی)اسم صفت- حریص- څوسمار- سرابن- (افغانستان)-

سولېدل:(سوهٔ-لې-دل)مصدر- ځوځېدل- تپېدل- (۲)بې وېښا دَ چا پوړی خوړل-

سولېدل:(سو-لې-دل)مصدر لازم- (۱)مښل کېدل- مړلے کېدل- (۲)زدویل کېدل- زدوول کېدل-

سولېدلے:(سو-لې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع سولېدلی- مؤنث سولېدلې- وګورئ سولېدل-

سولېدن:(سو-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سولېدل-

سولېدنګ:(سو-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سولېدل-

سولېدنه:(سو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سولېدل-

سولېدونکے:(سو-لې-دون-کے)اسم فاعل- جمع سولېدونکی- مؤنث سولېدونکې- وګورئ سولېدل-

سولېدهٔ:(سو-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سولېدل-

سولۍ:(سو-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دار- تخته- پانسی- غرغره- (۲)تُند باد- تېزه هوا-

سولۍ:(سو-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- دَ شوتل پهٔ شان یو شین بوټے-

سولے:(سو-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه کته چې غمے پکښې نه وی- څلے-

سولے:(سو-لے)اسم صفت- (۱)لالچی- طماع- (۲- اسم)هغه څټک چې ژرنده پرې تېرهٔ کوی-

سوم:(سوم)اسم- واحد- مذکر- (۱)سُم- سورے- سروے- (۲)دَ ستنې سُورے- سپم-

سوما:(سو-ما)اسم- واحد- مذکر- مستی- ژوند- خوند-

سومباټور:(سوم-با-ټ-ور)اسم صفت- کوناټور- دَ غټو کناټو خاوند-

سومباټے:(سوم-با-ټے)اسم- واحد- مذکر- (۱)کوناټے- (۲)وړوکے سورے- نرے سورے-

سومباخه:(سوم-با-خه)اسم- واحد- مؤنث- کونه- مقعد- دَ لویو بولو اندام- سومبټه-

سومبټه:(سوم-بهٔ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ سومباخه-

سومبروغے:(سوم-برو-غے)اسم- جوغرے- وړوکے سورے- سومبرے- دربچه-

سومبرے:(سوم-ب-رے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے سُورے- وړوکے سروے- سومبروغے-

سومبل:(سوم-بل)مصدر- (۱)نېزه وهل- (۲)سورے کول-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ة"(ز-ره)، "ة"(پو-هې-دهٔ)

سومبور:(سوم-بَ-وَر)اسم صفت- وګورئ سومباټور-
سومبه:(سوم-به)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې په اُسپنه کښې پرې سورے کیږی-
سومبی:(سوم-بی)اسم- واحد- مؤنث- کونه- مقعد- دوبره- توبره-
سون:(سُون)اسم- واحد- مذکر- پلو- طرف- لورے- خوا- اړخ-
سون:(سُون)اسم- (۱)سونګ- سوځیدنه- (۲)د سوځیدلو مواد-
سونار:(سُ-نار)اسم صفت- زرګر- د زرو کار کسب کونکے-
سونبه:(سوم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سومبه- سُمبه- (۲)د شل په شان د مخروطی شکل یوه آله-
سونت:(سُو-نت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سُنت-
سونتے:(سو-نَ-تے)اسم- منت باری- احسان منته-
سونټے:(سون-ټے)اسم صفت- بنډے سُنډے- بونډے سُونډے- هغه څوک چې لاس او پښې دواړه ئې پرېکړے شوی وی-
سونج:(سونج)اسم صفت- واحد- مذکر- ویران- غیرآباد- خوشے- رنګ-
سونجه:(سون-جه)اسم- واحد- مؤنث- دشت- بیابان- صحرا- میره-
سونځ:(سُونځ)اسم صفت- وېرونکے- ډارونکے- بیرونکے-
سوندر:(سُون-دَر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سُندر-
سوندک:(سون-دَک)اسم- د حلوا یو قسم-
سونده:(سُون-ده)اسم- واحد- مؤنث- شک- حسد- بدګومان-
سوندے:(سون-دے)اسم- واحد- مذکر- د پسرلی موسم کښې شین کېدونکے یو صحرائی بوټے-
سونړ:(سونړ)اسم- مذکر- (۱)سڼ- سوڼ- کنف- کتان- یو قسم بوټے چې رسی او کوښی ترې جوړولے شی- (۲)شنړ- سنړ- جنجړ- زنجبیل- زنجفیل-
سونړک:(سُون-ړک)اسم- واحد- مذکر- د هاتی خرټم-
سونړک مونړک:(سُون-ړک-مُون-ړک)اسم- واحد- مذکر- (۱)انړک سونړک- د ژمی په آخر کښې څو ورځې چلېدونکی یخ بادونه- (۲)وران ناستے-
سونړ مونړ:(سُونړ-مُونړ)اسم صفت- چپ- خاموش- غلے- ساکت- چپه خله-
سونړه:(سُون-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شونړه- (افغانستان)-
سونره:(سون-ره)اسم- سونکا-
سونګ:(سُونګ)حاصل مصدر- وګورئ سول-
سونګار:(سونګ-ګار)اسم صوت- سینګېدنه- سینګ سینګ کونه- د کوترې آواز-
سونګټ:(سونګ-ګټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)په تت اور پخه شوې د پاپړ غندې ړوړی- (۲)ژړاګویه- (۳)سوے- سوزیدلے-
سونګل:(سونګ-ګل)مصدر- په نری آواز ژړل- په پوزه کښې ژړل-
سونګن:(سونګ-ګن)اسم صفت- (۱)ژړا کونکے- ژړېدونکے- (۲)حاصل مصدر- وګورئ سونګل-
سونګه:(سونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پوزه- پزه- پیزه- (۲)چیته پوزه- (۳)د غر څوکه-
سونګېدل:(سُونګ-ګې-دَل)مصدر- (۱)په پوزه کښې ژړل- (۲)د لوږې په وخت د سپی سینګېدل-
سونګېدلے:(سُونګ-ګې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سونګېدلی- مؤنث سونګېدلې- وګورئ سونګېدل-
سونګېدن:(سُونګ-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سونګېدل-
سونګېدنګ:(سُونګ-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سونګېدل-
سونګېدونکے:(سُونګ-ګې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سونګېدونکی- مؤنث سونګېدونکې- وګورئ سونګېدل-
سونګېدنه:(سُونګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سونګېدل-
سونګېده:(سُونګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سونګېدل-
سونګے:(سونګ-ګے)اسم صفت- ټيټ- د ونې چیت سړے- بونا-
سونګے:(سونګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- لویه خاررینه پیاله- د خاورو تغاره- کاشین-
سوڼ:(سوڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ سونړ- (۲)په پوزه د هوا وېستو عمل-
سوڼ خېل:(سوڼ-خېل)اسم- واحد- مذکر- خانه بدوش- کډوال- کوچیان-
سوڼکه سوڼکه:(سوڼ-که-سوڼ-که)اسم صوت- د سوڼی آوازونه- ڦس ڦس- په نری او خاموشه آواز رینګېدنه-
سوڼل:(سو-ڼَل)مصدر- وګورئ سوڼول-
سوڼول:(سو-ڼَ-وَل)مصدر- په پوزه هوا وېستل- د پوزې نه ګړینګ غرخول-
سوڼون:(سو-ڼَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ سوڼول-
سوڼونکے:(سو-ڼَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سوڼونکی- مؤنث سوڼونکې- وګورئ سوڼول-
سوڼونګ:(سو-ڼَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوڼول-
سوڼونه:(سو-ڼَ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوڼول-
سوڼوه:(سو-ڼَ-وَهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوڼول-
سوڼه:(سو-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- پېغله- خوانه جینۍ-
سوڼهار:(سوڼ-هار)اسم صوت- د پوزې سوڼ کولو آواز-
سوڼې:(سو-ڼې)اسم- جمع- مؤنث- دروغ- افلتې- فضول وینا- باتې-
سوڼېدل:(سو-ڼې-دَل)مصدر لازم- په پوزه د هوا آواز راکښل او وېستل-
سوڼېدلے:(سو-ڼې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سوڼېدلی- مؤنث سوڼېدلې- وګورئ سوڼېدل-
سوڼېدن:(سو-ڼې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سوڼېدل-
سوڼېدنګ:(سو-ڼې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سوڼېدل-
سوڼېدنه:(سو-ڼې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سوڼېدل-
سوڼېده:(سو-ڼې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سوڼېدل-
سوونه:(س-وو-نه)اسم- جمع- سلګونه- سلونه- د سل جمع-

سوه:(سو-وه)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سوا- يو بوټے چې پهٔ دارو کښې پکاريږي او خوږ شوے اندام پرې مالش کولے شي-

سوه:(سُ-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يو قسم ساګ- (۲)ښکلا- سينګار- ړول- ښانست-

سوه:(سُوه)اسم- مؤنث- (۱)سُم- دَ اس. خر يا خچر وغيره سم- (۲)دَ نمر تاؤ- (۳)کناوه- (۴)سوے-سوزش-

سوه:(سهٔ-وه)اسم- واحد- مؤنث- سويه- خرګوش-

سوه بېره:(سَ-وه-بې-ره)اسم- واحد- مؤنث- غټه بېره- بډه بېره- مخرنۍ- دَ بېرې په شان يوه ونه او دَ هغې مېوه- مرخنۍ- سوابېره- جمع سوه بېرې-

سوما:(سو-ما)اسم- واحد- مذکر- (۱)فائده من- دَ ښېګړې- کټور- پکارېدونکے- (۲)يو قسم قيمتي پخوانے ټوکر-

سوماک:(سو-ماک)اسم- واحد- مذکر- يوه ناروغي-

سومان:(سو-مان)اسم- واحد- مذکر- چوسار- سوان- اُسپن توږے- سومن- جمع سومانونه-

سومانه:(سو-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- آسانی- آسانتيا- سهولت- آرام-

سومړه:(سو-مهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- بې طريقې خبره- بې ربطه خبره-

سومن:(سو-من)اسم- واحد- مذکر- چوسار- سوان- سومان-

سومېدل:(سو-مې-دل)مصدر لازم- (۱)کړېدل- نولېدل- دلګير کېدل- (۲)زړهٔ سوزېدل- زړهٔ اُبهٔ کېدل- زړهٔ نرمېدل-

سومېدلے:(سو-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سومېدلی- مؤنث سومېدلې- وګورئ سومېدل-

سومېدن:(سو-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سومېدل-

سومېدنګ:(سو-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سومېدل-

سومېدنه:(سو-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سومېدل-

سومېدونکے:(سو-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سومېدونکی- مؤنث سومېدونکې- وګورئ سومېدل-

سومېدهٔ:(سو-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سومېدل-

سوئ:(سَ-وئ)اسم- دَ اوربشو بوټے چې دَ دانې پخولو نه مخکښې يُ وشوکوی-

سوی خوا:(سهٔ-وی-خوا)اسم صفت- اينه سوے- غم زپلے- غم لړلے- نيمه خوا-

سويکه:(سو-يهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- يو صحرائے مورګ- خاۍ-

سويکے:(سوی-کے)اسم- وګورئ باغوټ-

سويه:(سَ-وی-يه)اسم- (۱)برابر- يوشان- (۲)راستی- برابری-

سوې:(سوې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سوه- سُمونه- سومونه- دَ چېلۍ د پښو چاؤدنه-

سوېغالے:(سوې-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ سوې غار- دَ سوې دَ وسېدو خاۍ-

سوېل:(سوېل)اسم- سهېل- قطب-

سوېلی:(سَ-وې-لې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ملکرې- دَ جينۍ دَ سېل ملګرې-

سوے:(سوے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوزش- سوخت- (۲)دَ زړهٔ سوے-

سوے:(سهٔ-وے)اسم صفت- سوزېدلے- ستی شوے- سوخته-

سوے:(سَ-وے)اسم- واحد- مذکر- دَ سويې نر- نر خرګوش-

سوے پتوے:(سهٔ-وے-په-تهٔ-وے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)الولپه- سوے لوے- (۲)مئين- عاشق- زړهٔ بائيللے- (۳)سينه سوے- دَ عشق پهٔ اور سوے-

سوے ستکورے:(سهٔ-وے-ست-کو-رے)اسم- د ړوږی سوزېدلے خخوګکے- دَ ړوږی مېده ګی- بوټسورے- وګورئ بوټسوری-

سها:(سَ-ها)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم کپړه-

سها:(س-ها)اسم- واحد- مؤنث- د يو ستوری نوم-

سهار:(سَ-هار)اسم- واحد- مذکر- دَ "سحر" بل قرأت-

سهاګه:(س-ها-ګه)اسم- تنه کار- يو معدنی څيز چې پهٔ دارو کښې هم پکارېږی او زرګران يُ دَ سرزرو پهٔ کار کښې هم پکاروی- تنسکار-

سهان:(سَ-هان)اسم- سامان-

سهروردی:(سَ-هر-وَر-دی)اسم- يو اسلامی طريقه چې امام طريقت يُ شېخ الشيوخ شېخ شهاب الدين ابوحفص بن محمد سهروردی رحمة الله علېه دے-

سهل:(سَ-هَل)مصدر- زغمل- تېرول- هضم کول-

سهل:(سَ-هَل)اسم- واحد- مذکر- اسان- دَ ګران ضد-

سهلے:(سَ-هٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سهلی- مؤنث سهلې- وګورئ سهل-

سهم:(سَ-هم)اسم- سهام- غشے- غيشے- (م- عربی)-

سهمان:(سه-مان)اسم- (۱)سامان- (۲)دَ مرزتو پهٔ لهجه کښې سهمان دَ چا د لاسه مجبورېدلو ته هم وائی يعنی ظلم، جفا-

سهمناک:(سَ-هم-ناک)اسم صفت- خوفناک- يرونکے-وېره وړے- وېرېدلے- ترهنده-

سهمندے:(سه-من-دے)اسم صفت- دَ زغم وړ- دَ تحمل وړ- ناز زغمونکے-

سهنه:(س-هٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سهل-

سهو:(سه-و)اسم- واحد- مذکر- غلطی- خطا- وګورئ سهوه-

سهواً:(سه-ون)متعلق فعل- پهٔ هېره- پهٔ غلطۍ-

سهول:(سه-ول)مصدر متعدی- زغملو ته اړکول- سهلو ته مجبورول- سهل- زغمل-

سهون:(سهٔ-ون)حاصل مصدر- وګورئ سهول-

سهونکے:(سه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سهونکی- مؤنث سهونکې- وګورئ سهول-

سهونګ:(سه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سهول-

سهونه:(سه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سهول-

سهوه:(سَه-وه)اسم- واحد- مؤنث- غلطي- تېروتنه- ساوه- خطا- لغزش- هېر- غلط-

سهوۀ:(سَه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ سهول-

سهه:(سَ-هه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زغم- برداشت- حوصله- (۲)سا- ساه-

سهېدل:(سَ-هې-دَل)مصدر لازم- زغمل- تېرېدل- برداشت کېدل- ګالل کېدل-

سهېدلے:(سَ-هې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سهېدلي- مؤنث سهېدلې- وګورئ سهېدل-

سهېدن:(سَ-هې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سهېدل-

سهېدنګ:(سَ-هې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سهېدل-

سهېدونکے:(سَ-هې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سهېدونکي- مؤنث سهېدونکې- وګورئ سهېدل-

سهېدنه:(سَ-هې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سهېدل-

سهېده:(سَ-هې-ده)اسم- واحد- مؤنث- زغم- تحمل-

سهېدۀ:(سَ-هې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ سهېدل-

سهېل:(سَ-هېل)اسم- واحد- مذکر- د يو ستوري نامه- ځلند ستورے- وګورئ سوهېل- (م- عربي)-

سهېله:(سَ-هې-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)آسانتيا- آساني- سهولت- (۲)همځولې- سوېلي-

سهېلي:(سَ-هې-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- سوېلي- د جينۍ دوسته- ملګرې- همځولې-

سی:(سی)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اوړو بوس- سبوس- (۲)ختکه-

سیا:(سَیا)اسم- واحد- مؤنث- هغه پړے چې د کبانو د جال واړۀ واړۀ کورونه پرې يوځاې کولے شي-

سیاخه:(سَیا-خه)اسم- واحد- مؤنث- د کانې پلنه او مهينه تيږه-

سیاح:(سَ-ياح)اسم صفت- سېلانے- په سېل تلونکے- سېل کونکے-

سیاحت:(سَ-يا-حَت)اسم- واحد- مذکر- سېل- د سېلانی کار او عمل- ټوپنګرځے- (م- عربي)-

سیادت:(سَ-يا-دَت)اسم- واحد- مذکر- مشري- سرداري- بزرګي- شرف- لوئي- (م- عربي)-

سیادلي:(سَيا-د-لي)اسم- واحد- مؤنث- سر ګرځېدنه- سرچورلاندے- زړۀ زړېدنه- سياه دلي-

سیار:(سَ-يار/سَي-يار)اسم صفت- ګرځنده- متحرک- خوځند- هغه څوک چې زيات ګرځي-

سیارکے:(سَيار-کے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم د باجرې په شان بوټے-

سیارل:(سَيا-رل)مصدر متعدي- ساتل- حفاظت کول- پالنه کول- پالل-

سیارلے:(سَيا-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سيارلي- مؤنث سيارلې- وګورئ سيارل-

سیارن:(سَيا-رن)حاصل مصدر- وګورئ سيارل-

سیارنګ:(سَيا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ سيارل-

سیارنه:(سَيا-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سيارل-

سیارونکے:(سَيا-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سيارونکي- مؤنث سيارونکې- وګورئ سيارل-

سیاره:(سَ-يا-ره/سَي-يا-ره)اسم صفت- ګرځنده ستورے- متحرک ستورے- (اسماني جرم) چې د نمر نه کېر چاپېر ګردش کوي- جمع سيارې-

سیاره:(سَ-يا-ره)اسم- واحد- مؤنث- سابندی- توره ټوخلې-

سیارۀ:(سَيا-رۀ)حاصل مصدر- وګورئ سيارل-

سیاست:(سَ-يا-سَت/سَ-يا-سَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)په خلقو حکم چلونه- حکومت کونه- (۲)تدبير جوړول او وړاندې وروستو فکر کول- (م- عربي)-

سیاست دان:(سَ-يا-ست-دان)اسم صفت- سياست کونکے-

سیاسه:(سَيا-سه)اسم- واحد- مؤنث- بغرۍ-

سیاسي:(سَ-يا-سي)صفت- سياست سره متعلق-

سیاق:(سياق)اسم- واحد- مذکر- رسم- طريقه- طرز- اسلوب- سليقه- انځور- دود- (م- عربي)-

سیال:(سَيال)اسم صفت- برابر- په هر څۀ يو شان- سارے- سيارے- (م- فارسي)-

سیالټ:(سَيا-لټ)اسم- واحد- مذکر- ټول- تمام- بيخي- چټ- ستل-

سیالټه:(سيال-ټه)اسم- واحد- مؤنث- بيخي- بشپړې-

سیاله:(سَيا-له)اسم صفت- (۱)د "سيال" مؤنث- وګورئ سيال- (۲- اسم)ارام- دمه-

سیالي:(سَيا-لي)اسم- واحد- مؤنث- برابري- همسري- يوشان والے-

سیالي کر:(سَيا-لي-کر)اسم صفت- وګورئ سيالي ګونے-

سیالي ګونے:(سَيا-لي-ګو-نے)اسم صفت- سيالي کونکے- سيالي کر-

سیالي مار:(سپا-لي-مار)اسم صفت- حريص-

سیانه:(سی-يا-نه)اسم صفت- هوښيار- عاقل- پوې- چالاک-

سیاه:(سی-ياه/سَياه)اسم صفت- مذکر- تور- تور رنګ لرونکے څيز- (م- فارسي)-

سیاه دلي:(سياه-د-لي)اسم- واحد- مؤنث- سيادلي-

سیاه کار:(سی-ياه-کار)اسم صفت- بدعمله- بد کارونه کونکے- بدلمنے- (م- فارسي)

سیاه کاري:(سی-ياه-کا-ري)اسم- واحد- مؤنث- د سياه کار کردار او عمل- بدلامي- بدلمنی-

سیاهه:(سَيا-هه)اسم- واحد- مؤنث- فهرست- ياداشت- شمېرليک- (م- فارسي)-

سیاهي:(سی-يا-هي)اسم- واحد- مؤنث- هغه تور رنګ لرونکی مائع چې په کاغذ وغيره پرې ليک کېږي- تورکے- دودے- (م- فارسي)-

سیب:(سیب)اسم- واحد- مذکر- زیم- نم- لوندوالے- رطوبت-
سیپاره:(سی-پا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ قران شریف دَ دېرشو برخو نه یوه برخه-
سیپارے:(سی-پا-رے)اسم- واحد- مذکر- یوه لوړه وُنه چې پهٔ تودو سیمو کښې کیږی-
سیپی:(سی-پی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)صدف- سیپ- (م- هندی)- (۲)کاشک- کاشوغه- وړوکے کاشک-
سیتی:(سی-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم وریژې-
سیټ:(سیټ)اسم- واحد- مذکر- دَ ناستې مخصوص ځائ- گدی- (م- انګریزی)-
سیټر:(سی-ټر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارغمک-
سیجے:(سی-جے)اسم صفت- دَ خالص نسل- سُوچه-
سیچه:(سی-چه)اسم صفت- سوچه- رښتونے- صفا-
سیځه:(سی-ځه)اسم- واحد- مؤنث- کرکنده- کنده- دَ تیږې تخته-
سیخ:(سیخ)اسم صفت- (۱)نېغ- سیدها- سم- (۲)دَ اُسپنې نرے تار-
سیخ پاؤ:(سیخ-پاؤ)اسم صفت- کلک- مضبوط- مخې ته اودرېدنه- پهٔ خپله خبره ټینګېدنه-
سیخ پائ:(سیخ-پائ)اسم- سرپائ- ودرېدنه- ټینګښت-
سیخچه:(سیخ-چه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم برمه چې دېوالونه پرې سورى کولے شی-
سیخ کباپ:(سیخ-کَ-باپ)اسم صفت- سیخکے- سیخکی- سیخکی کباپ-
سیخکی:(سی-خه-کی)اسم- جمع- مذکر- سیخکی- کباپ- پهٔ سیخ کښې پېئلی کباپ-
سیخل:(سی-خل)مصدر- پهٔ کښېمنځلو کښېمنځلو ټکول-
سیخلے:(سی-خهٔ-لے)مفعول- واحد- مذکر- وګورئ سیخل-
سیخندے:(سی-خن-دے)اسم- چوخندونکے-
سیخنه:(سی-خهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سیخل-
سیخول:(سی-خَ-ول)مصدر متعدی- (۱)نېغول- سمول- روغول- (۲)ټکول-
سیخون:(سی-خَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ سیخول-
سیخونکے:(سی-خَ-وون-کے)اسم فاعل- جمع سیخونکی- مؤنث سیخونکې- وګورئ سیخول-
سیخونګ:(سی-خَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سیخول-
سیخونه:(سی-خَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سیخول-
سیخوهٔ:(سی-خَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سیخول-
سیخېدل:(سی-خې-دَل)مصدر لازم- (۱)نېغېدل- سمېدل- رغېدل- (۲)ټکېدل-
سیخېدلے:(سی-خې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع سیخېدلی- مؤنث سیخېدلې- وګورئ سیخېدل-
سیخېدن:(سی-خې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ سیخېدل-
سیخېدنګ:(سی-خې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ سیخېدل-
سیخېدنه:(سی-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ سیخېدل-
سیخېدونکے:(سی-خې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع سیخېدونکی- مؤنث سیخېدونکې- وګورئ سیخېدل-
سیخېدهٔ:(سی-خې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ سیخېدل-
سیخے:(سی-خے)اسم- دَ سورلی یوه لوبه-
سید:(سید)اسم- واحد- مذکر- نېغ والے- برابروالے- سموالے-
سیده:(سی-ده)اسم- نېغ- برابر- سم- روغ- راست-
سیر:(سیر/س-یر)اسم- واحد- مذکر- (۱)حرکت- چکر- تګ- (۲)دَ سیرت جمع- عادتونه- خویونه-
سیراکه:(سیر-را-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خره/سیرکه-
سیربندکے:(سیر-بند-کے)اسم- وګورئ سنا- یو قسم بوټے چے پهٔ پسرلی کښې کیږی-
سیرت:(سی-رت)اسم- واحد- مذکر- (۱)کردار- عمل- خصلت- خوئ- (۲)مذهب-
سیرکه:(سیر-که)اسم- واحد- مؤنث- مینا- کابلی- زرګیره- ځیرکه- سیراکه- ځیراکه- خره- لالی- شارو- شارونې-
سیرل:(سی-رل)مصدر- کوټل-
سیرن:(سی-رن)اسم- واحد- مذکر- هغه غونے چې دَ ځربوالی سره سره تریخ هم وی- سرزورے غونے-
سیرنګ:(سی-رنګ)اسم- واحد- مذکر- - سُرنګ- سورے- جمع سیرنګونه-
سیرو:(سی-رو)اسم- واحد- مذکر- دَ کټ لنډے بازو- سیروا-
سیروا:(سیر-وا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ سیرو-
سیره:(سی-ره)اسم صفت- (۱)بداره- بې هو- وحشت زده- خوفزده- وحشی- غصه- (۲- اسم)پرهر-
سیره:(سی-ره)اسم- واحد- مؤنث- ځیره- دَ نمر سترګه- دَ نمر راختنه-
سیرین:(سی-رین)اسم- واحد- مذکر- یوه وُنه-
سیرئ:(سی-رئ)اسم- هغه زمکه چې جومات له دَ مدد دَ پاره ورکولے شی-
سیرئ:(سی-رئ)اسم- واحد- مؤنث- یوه بېکاره ونه-
سیزنی:(سیز-نی)اسم- واحد- مؤنث- دَ کپړې نه جوړه شوې نرۍ پټۍ چې ماشومان پرې پهٔ روښې کښې تړلے شی- جمع سیزنیانې-
سی سی:(سی-سی)اسم صوت- دَ ساړهٔ نه سو سو یا سی سی کونه-
سیسی:(سی-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو خړ رنګ لرونکې حلاله مرغۍ-
سیکه:(سی-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ اُسپنې یو قسم چې ډېر دروند وی- (۲- صفت)دروند-
سیلی:(سی-لی)اسم- جمع- مذکر- بنګړی- چوړی-
سیلېدل:(سی-لې-دَل)مصدر- ساه بې کوره کېدل- بې واره بې واره ساه

"زبر"(ځ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "زېر"(کَ-تاب)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "جزم"(شکون)، "ه"(زَ-رهٔ)، "هٔ"(پو-ېې-دهٔ)

اخستل-

سیلي:(سی-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تېزه هوا- تېز باد- طوفان- (۲)تباهي-

سیلي ږلي:(سی-لي-ږ-لي)اسم مرکب- سیلي او ږلي- بادو باران- سیلي باران-

سیم:(سیم)اسم- واحد- مذکر- (۱)فلزي مزے- (۲)جست- (۳)ستوم- د ستني سپم-

سیماب:(سی-ماب)اسم- واحد- مذکر- پاره-

سیم اسا:(سیم-آ-سا)اسم صفت- (۱)د سپینو زرو په شان- (۲)سپین او ښائسته-

سیمک:(سی-مک)اسم- واحد- مذکر- هغه لویه ستن چې څوکه ي پخه وی او ښځې پرې په سرونو کښې لار جوړوی-

سیمه:(سی-مه)اسم- واحد- مؤنث- طرف- لورے- خوا- اړخ- علاقه- منطقه-

سیمیا:(سیم-یا)اسم- واحد- مؤنث- د جادو علم(م- عربي)-

سیمي:(سی-مي)اسم- واحد- مؤنث- پرسیمي- سحری- پېشمنے- پښمنے- سرکي-

سین:(سین)اسم- واحد- مذکر- سیند- دریاب- رود- جمع سینونه-

سینت:(سی-نت)اسم- واحد- مذکر- منت- زاری- جمع سینتونه-

سینجکی:(سین-ج-کی)اسم- ښخه- لونه- دمبله- شلنه- ښنځه- شینځکی-

سینخلے:(سین-خ-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه مزے چې د ماشومانو په روښی کښې د ترلو د پاره پکارولے شي-

سینځه:(سین-ځه)اسم- د سر په وېښتو کښې لار ویستنه-

سیند:(سیند)اسم- واحد- مذکر- سین- دریاب- رود- جمع سیندونه-

سیندک:(سین-دک)اسم صفت- هغه سړے چې نښه ویشتو کښې تکړه وی- نشانه باز-

سیندلاؤ:(سیند-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- د اُبو سپے- سګ لاوو- سګ لامو-

سیندوړے:(سیند-وه-ړے)اسم صفت- اُبو وړے- غرق- ډوب- لاهو شوے-

سیندے:(سین-دے)اسم- تراټے- پیاځه- د ښځو د سر د وېښتو لار یا کرښه- سېلندے- (۲)سندے-

سین شین:(سین-شین)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مارغه- باري-

سینګ:(سینګ)اسم- واحد- مذکر- برابری- مساوات- همسری- یو شان والے-

سینګار:(سینګ-ګار)اسم- واحد- مذکر- د ځان سمبالے- سرخی سُفیدی- جوړښت- ډول- سنبالښت- ارائش- ځان- جوړونه- سنګار-

سینګارول:(سینګ-ګا-ر-ول)مصدر متعدی- سرخی سفیدی کول- ارائش کول- ښکلا بخښل- ډولی کول- ښائسته کول-

سینګارون:(سینګ-ګا-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ سینګارول-

سینګارونګ:(سینګ-ګا-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ سینګارول-

سینګارونه:(سینګ-ګا-ر-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ سینګارول-

سینګاروه:(سینګ-ګا-ر-وه)حاصل مصدر- وګورئ سینګارول-

سینګارېدل:(سینګ-ګا-رې-دل)مصدر لازم- سُرخي سفیدی کېدل- ډولی کېدل- جوړېدل-

سینګارېدن:(سینګ-ګا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ سینګارېدل-

سینګارېدنګ:(سینګ-ګا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ سینګارېدل-

سینګارېدونکے:(سینګ-ګا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سینګارېدونکی- مؤنث سینګارېدونکې- وګورئ سینګارېدل-

سینګارېدنه:(سینګ-ګا-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ سینګارېدل-

سینګارېده:(سینګ-ګا-رې-ده)حاصل مصدر- وګورئ سینګارېدل-

سینګاوڼ:(سینګ-ګا-وڼ)اسم- واحد- مذکر- د کشتۍ وروستی حصه کښې هغه لویه چپه چې د کشتۍ د رُخ بدلولو د پاره استعمالولے شي-

سینګړ:(سینګ-ګړ)اسم صفت- سنګېر- کاڼیز- سنګ زار- ډبرین-

سینګړی:(سین-ګړی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ مجکی- بارود دانی-

سینګ لاؤ:(سینګ-لاؤ)اسم- د اُبو سپے- یو قسم مهے یا د اُبو ځناور- سیندلاو-

سینګی:(سینګ-ګي)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم کب- سګ مهے- سینګ لاؤ-

سینه:(سی-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټټر- د بدن برنۍ مخامخ حصه- د غاړې او خېټې مېنځنۍ حصه- (۲)تے- (۳)پې-

سینه بغل:(سی-نه-به-غل)اسم- واحد- مذکر- برېښ- سکاروی- د سینې برېښ-

سینه بند:(سی-نه-بند)اسم- واحد- مؤنث- هغه کپړه چې زنانه ي خپلو تیونو ته اچوی-

سینه سوے:(سی-نه-سه-وے)اسم صفت- غم لړلے- په غم اخته- غمګین- زړه چاؤدے-

سینه کښ:(سی-نه-کښ)اسم صفت- سینه کش- سینه وکښلې- سینه ویستې-

سینیارے:(سین-یا-رے)اسم صوت- شمیارے- شغارے- د تېز باد د چلېدو آواز-

سیو:(سیو)اسم- واحد- مذکر- (۱)نمی- رطوبت- لوندوالے- (۲)سَیَپ- سیب-

سیوران:(سیو-ران)اسم- مینا- چتر-

سېټ:(سېټ)اسم صفت- مالداره سړے-

سېټې:(سې-ټې)اسم- واحد- مؤنث- سټک- څټک-

سېځل:(سې-ځل)مصدر- سوزول- په څه څیز اُور بلول- اُور ورته کول- اُور پورې کول- سېزل-

سېځلے:(سې-ځه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ سېځل-

سېځنه:(سې-ځه-نه)حاصل مصدر- وګورئ سېځل-

سېځونکے:(سې-ځون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع سېځونکی- مؤنث سېځونکې- وګورئ سېځل-

سېد:(سېد)اسم صفت- (۱)باچا- مشر- پېشوا- (۲)د سېدانو یا سعاداتو

ی (ځی-رل)، ي (مې-ره-ول)، ی (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

لۀ کورنی څخه يو نارينه سړے- اهلِ بيت- مؤنث سپده-

سپدالي:(سپ-دا-لي)اسم- واحد- مؤنث- سياه دلي- زړۀ ړوبېدنه- ساه لنډه لنډه کېدنه-

سپدکے:(سپد-کے)اسم صفت- سپدوے- سپد- چې لۀ يو طرفه سپد وی- دَ پلار يا دَ مور لۀ طرفه سپد-

سپر:(سپر)اسم- واحد- مذکر- څلور پاوه- شپاړس چيټاکی- دَ وزن يو کانے- جمع سپرونه-

سپراب:(سپ-راب)اسم- (۱)وګورئ ابوبشے- (۲)پۀ اُبو موړ- خړوب- ډک-

سپرکال:(سپر-کال)اسم صفت- سور کال- وچ کال- سوکړه- خشکه-

سپرله:(سپر-له)اسم- واحد- مؤنث- هغه چېلی چې پۀ وړومبی خل لنګه شی-

سپرلے:(سپر-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ بزې نر- دَ بزې بچے چې دوه کلنے وی- مؤنث سپرله- جمع سپرلی-

سپرم:(سپ-رم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کُلمې تار- (۲)دَ څرمنې نری تسمه چې پېزار پرې ګنډلے شیٔ-

سپزل:(سپ-زل)مصدر- وګورئ سوزول-

سپسنه:(سپ-سۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه بختوره ښځه چې دَ کنبو خامنو مور وی-

سپغون:(سے-غون)اسم- واحد- مذکر- هغه اَس چې دَ ډېر کار او منډو ترړو پۀ وجه ئې وجود زيات سخت او کلک وی-

سپقل:(سپ-قل)اسم- خلونه- روڼے- چمک وېستنه- زنګ لرې کونه- وګورئ صيقل-

سپک:(سپک)اسم- واحد- مذکر- توان- طاقت-

سپک ختلے:(سپک-خ-تۀ-لے)اسم صفت- کمزورے- کم طاقته- ناتوان-

سپکره:(سپک-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ميزری ميوه، مغز-

سپکړه:(سپ-کَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- سپنکړه- سل (۱۰۰)- صد- سل دانې- دَ شمېر يو اندازه او دَ هغې نامه- جمع سپکړې-

سپکل:(سے-کل)مصدر- (۱)تکورول- ګرمول- حرارت ورکول- (۲- اسم)دَ "صيقل" مغفن- خلق- پړق- وګورئ صيقل- (۳- اسم)سائيکل- بائسپکل-

سپکلے:(سے-کۀ-لے)اسم صفت- (۱)سپېرۀ- بدبخته- بدنصيبه- (۲)تکور شوے- وريت شوے-

سپکن:(سے-کن)اسم صفت- (۱)موړ- ډک- (۲)دَ ډېر خوراک کولو پۀ وجه دَ زړۀ خرابوالے-

سپکور:(سپ-کۀ-ور)اسم صفت- طاقت ور- زورور- توانا- قوی-

سپکوه:(سپک-وه)اسم- کاربز-

سپل:(سپل)اسم- واحد- مذکر- (۱)تماشه- چکر- ننداره- نظاره- (۲)دَ مرغيو وغيره ټولے-

سپلاب:(سے-لاب)اسم- واحد- مذکر- پۀ درياب کښې دَ اُبو زياتوالے- نېز- سېلاو-

سپلات:(سے-لات)اسم- واحد- مذکر- دَ سرسام مرض-

سپلاته:(سپ-لا-ته)اسم- واحد- مؤنث- تيره-

سپلانے:(سے-لا-نے)اسم صفت- وګورئ سياح- سپل ګرندے- سپلګر- سپلندونے-

سپلاؤ:(سپ-لاؤ)اسم- واحد- مذکر- دَ "سپلاب" مغفن-

سپلاوه:(سے-لا-وه)اسم- واحد- مؤنث- اوړده او غټه چاړۀ-

سپلتے:(سے-ل-تے)اسم صفت- هغه څوک چې سرسام شوے وی- سرسامی-

سپل صفا:(سپل-ص-فا)اسم- واحد- مذکر- سپل- چکر- ساعت تېرے- تفريح-

سپلګر:(سپل-ګر)اسم صفت- سپلندونے- سپلانے-

سپلګی:(سپل-ګی)اسم- واحد جمع- مؤنث- سلګی-

سپلمه:(سپل-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مخامخ- اُوپره- (۲)خاندان- (۳)محلتی- ګاونډی- (۴)تمام-

سپلن:(سے-لن)اسم- واحد- مذکر- تور- سکاڼ- سکڼ- سياه فام- توربخن-

سپلندونے:(سپ-لن-دو-نے)اسم صفت- (۱)سپلګرے- سپلانے- (۲)ملګرے- مرستيال- (۳)ساتندونے-

سپلندی:(سپ-لن-دی)اسم- لار-

سپلنے:(سپ-ل-نے)اسم صفت- سياح- آواره- يو ځائې بل ځائې ګرځېدونکے- سپلندونے- سپلانے-

سپلول:(سپ-ل-ول)مصدرِ متعدی- تېرۀ کول- سولول-

سپلوے:(سپل-وے)اسم- واحد- مذکر- اسوېلے- دَ ناراستی يا ستومانی لۀ کبله خله وازونه-

سپله:(سپ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرسته- پره- طرفداری- حمايت- (۲)دَ وريژو يو قسم-

سپله ګر:(سپ-له-ګر)اسم صفت- طرفدار-

سپلی:(سپ-لي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پلغوسری- سپلی- هغه پړے چې دَ وزغنو نه جوړيږی- (۲)شوانه- څخنکے- درزنده- لوېږندے-

سپلېدل:(سپ-لې-دل)مصدرِ لازم- ساه بې کوره کېدل-

سپلی:(سپ-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ سپلی-

سپلے:(سپ-لے)اسم- واحد- مذکر- حامی- طرفدار- مرستيال- جمع سپلی-

سپمايه:(سپ-ما-يه)اسم- واحد- مؤنث- توربخن رنګ چې دَ اُسپنځړی نه حاصليږی او بيا پرې جامې رنګولے شي-

سپمرغ:(سپ-مرغ)اسم- واحد- مذکر- يو مارغۀ چې ډېر عمر ژوندے وی-

سپمين:(سپ-مين)اسم صفت- دَ سپينو زرو نه جوړ څيز- (۲)سپين او ښائسته څيز يعنی محبوب-

سپن:(سپن)اسم- واحد- مذکر- صلاح- مصلحت- مشوره-

سپنوس:(سپ-نوس)اسم- واحد- مذکر- عقاب- ګربته- باز-

سپو:(سپو)اسم- واحد- مذکر- سبب- منه-

سپواوالے:(سپ-وا-وا-لے)اسم- زياتی توب- پرېمانی- ډېروالے-

سپوانی:(سپ-وا-نې)اسم- زیاتی- زیاتی ګړے- طفیلی-

سپورے:(سپو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سورے- سایه- (۲)پناه-

سی مې:(سی-مې)اسم صفت- (۱)شرمنده- خجل- (۲)روغ- جوړ- تندرست-

---

ش:(شین)حرف- (۱)د پښتو د الف- ب(حروف تهجی)دوه ویشتم حرف- (۲)د شمسی کال علامت-

شا:(شا)اسم- واحد- مؤنث- دمبال- پشت- د مخ ضد-

شاب:(شاب)اسم- واحد- مذکر- (۱)لویه چاړه- (۲)ځوان- (م- عربی)-

شابا:(شا-با)متعلق فعل- ښه کړه- ژر کړه- د تندی ندا-

شاباز:(شا-باز)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو وړوکے شان مخصوص جوړ شوے ډکے چې د رباب غرلو د پاره پکارولے شی- (۲)هغه تیلے چې تمبل پرې غږولے شی- (۳)یو ښکار کونکے مارغهٔ-

شاباس:(شا-باس)اسم- شاباس- د آفرین کلمه- د شاباش مخفف- (م- فارسی)-

شاباسے:(شا-با-سے)اسم- واحد- مذکر- شاباشے- آفرین- تعریف- جمع شاباسی-

شاباش:(شا-باش)اسم- وګورئ شاباس-

شاباشے:(شا-با-شے)اسم- وګورئ شاباسے-

شابالا:(شا-با-لا)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه دوست چې د وادهٔ په ورځو کښې د ځلمی سره یو ځاې ګرځی او د وادهٔ په رسم کښې سره شریک وی- (۲)د وادهٔ ځلمے- شاوهٔ- ودګینے- زوبزن- زوم-

شاباسی غاړه:(شا-با-سی-غا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د قمیص د ګریوان یو قسم(افغانستان)-

شابس:(شا-بس)اسم- د شاباس مخفف- وګورئ شاباس-

شابوټے:(شا-بو-ټے)اسم صفت- قوبے- کوبے- شابوکے- شابوکے- په ملا کښې قب لرونکے ټیټ- ټیټ ګرځیدونکے- جمع شابوټی-

شابوشی:(شا-بو-شی)اسم- واحد- مؤنث- زیړ ګل لرونکے یو خوشبویه بوټے-

شابوکے:(شا-بو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع شابوکی- وګورئ شابوټے-

شابوکے:(شا-بو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ شابوکے-

شابیرته:(شا-بیر-ته)متعلق فعل- د شا ډډې- د شا لهٔ خوا- په شا-

شابیل:(شا-بیل)اسم- واحد- مذکر- د غشی تیره څوکه-

شاپ:(شاپ)اسم- واحد- مذکر-.(۱)هغه نرے تیلے چې په سر کښې ئې غوړ مالوچ وی او د ماشوم قبض پرې ماتولے شی- (۲)دوکان- اټی- (په دې معنو کښې اصلاً انګریزی)- اټی (۲)لاپ- لاپه- اپلته-

شاپرشنجی:(شا-پر-شن-جی)اسم صفت- (۱)ستونی ستغ- (۲)برخلاف- مخالف- (افغانستان)-

شاپړنګه:(شا-پړنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- شپرنګه- یو ځنګلی بوټے- جمع شاپړنګې-

شاپسې:(شا-په-سې)اسم صفت- ملاتړ- مددګار-

شاپوش:(شا-پوش)متعلق فعل- اخوا دېخوا- پټ په پټه-

شاپه:(شا-په)اسم- واحد- مؤنث- ړوزه- لاقه- لاپه- جمع شاپې-

شاپهٔ شا:(شا-پهٔ-شا)متعلق فعل- پټ په پټه- غیر موجودګی کښې- پشې شا- شا سره لګیدلې-

شاپی:(شا-پی)اسم صفت- روزمار- لاپو- لاقو- جمع شاپیان-

شاپیانګه:(شا-پیانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- خړې پاڼې او خړ لرګے لرونکے یو بوټے- خمزوره- خمزری- جمع شاپیانګې-

شاپیټے:(شا-پی-ټے)اسم- واحد- مذکر- کارغهٔ پسکی- د کاغ پسکی- (۲)ګوجے- سیپی- صدف- سیپ-

شاپین پیکو:(شا-پین-پی-کو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شاپین پینکو-

شاپین پینکو:(شا-پین-پی-نه-کو)اسم- واحد- مؤنث- د وړو ملکانو یوه لوبه- ټوپی کنه- پټه ټوپی- شاپین پیکو-

شاپېټے:(شا-پې-ټے)اسم- واحد- مذکر- د شا بار- د شا پېټے- جمع شاپېټی-

شات:(شات)اسم- ګبینهٔ- هغه خوږه ټینګه ماده چې توری مچی ئې په خپل ګبین کښې جمع کوی- (م- شهد)-

شاتار:(شا-تار)اسم صفت- ستار- رباب وغیره کښې لهٔ ټولو غټ تار- جمع شاتارونه-

شاتر:(شا-تر)اسم- واحد- مذکر- سائیس- هرکاره- جلوه دار- جیلبی- تابعدار- غلام- نوکر- پیاده سپائی-

شاتره:(شا-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم دارو چې د تبې د پاره پکارولے شی- جمع شاترې- نباتاتی نوم فومیریا آفی سی نیلس (FUMARIA OFFICINALIS)-

شاتړ:(شا-تړ)اسم صفت- وګورئ شاتر-

شاتماغه:(شات-ما-غه)اسم- واحد- مؤنث- مکیزنه ښځه- ټینګ کونکې ښځه- جمع شاتماغې-

شاتوت:(شا-توت)اسم- واحد- مذکر- شهتوت- د توت د ذات یوه ونه او د هغې میوه- جمع شاتوتان- نباتاتی نوم د مورس انډیکا (MORUS INDICA) یو قسم-

شاتوری:(شا-تو-ری)اسم- واحد- مؤنث- الزام- بهتان-

شاتوری:(شا-تو-ری)اسم صفت- تور- تهمت- الزام-

شاتورے:(شا-تو-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه حیوان چې ځل (کته) پرې نهٔ وی- بربنډه شاه لرونکے حیوان- جمع شاتوری-

شاتوغی:(شا-تو-غی)اسم- غوره- وتلے- (۲)شانکوړې- کوبے- قوبے- (افغانستان)-

شا ته:(شا-ته)حرف جار- دمباله- خوا ته- اړخ ته- آخر ته- د وروستو-

شاتیر:(شا-تیر)اسم- واحد- مذکر- غټ تیر- هغه تیر چې د کوټې په مینځ کښې لګیدلے وی-

شاتینکے:(شا-تینک-کے)صفت- وګورئ شاتینکے-

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پیش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(پو-هې-دهٔ)

شاټوغے:(شا-ټو-غے)اسم- واحد- مذکر- شاقبے- شابوټے- شاکړوپے- هغه څوک چې په ملا کښې ئې قُب راوتے وی-

شاټوکے:(شا-ټو-کے)اسم- واحد- مذکر- هغه ګلداره کپړه چې د خولو نه د بچ کولو د پاره د ملا نه تاؤ شوې وی- قمردینه- دَ جامو ټکړه-

شاټیغے:(شا-ټي-غے)اسم صفت- شاټیټے- قُبے- شاټوغے- جمع شاټیغی-

شاټینګه:(شا-ټینګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دَ مارغۀ سنګدانه- د مارغۀ هغه معده چې کاڼی یا بل داسې کلک څیز ورته منتقلیږی-

شاټینګی:(شا-ټینګ-ګی)اسم- مضبوطیا- مرسته- ملګرتیا- طرفداری-

شاټینګے:(شا-ټینګ-ګے)اسم صفت- مددګار- طرفدار- ملاتړ- جمع شاټینګی-

شاخه:(شا-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کاڼی مهینه تیره- (۲)ټوکړه- درغن-

شاخ:(شاخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)حصه- څانګه- (۲)ښکر- (۳)دَ اُبو ناله- (۴)دَ ترخونو دری ګټه کپړه- (م- فارسی)-

شاخص:(شا-خص)اسم- (۱)مسافر- (۲)الۀ نښې وتلے غشے- (م- عربی)-

شاخل:(شا-خل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غلې یو قسم (۲)تراشل- (افغانستان)-

شاخلن:(شاخ-لن)اسم صفت- ښاخونه لرونکے-

شاخوړے:(شا-خو-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خوړه شا لرونکے حیوان- جمع شاخوړی- (۲)صفت- همدرد- چا سره خوږ لرونکے- دَ بل په درد دردیدونکے-

شاخه شولانګه:(شا-خه-شو-لانګ-ګه)اسم صفت- سخت جنګ- سور جنګ- سخته جګړه-

شاخیل:(شا-خیل)اسم- جاروکش- یو نسل چې په درمن دَ دانو سپ وهلو کار کوی- مؤنث شاخیله-

شاد:(شاد)اسم صفت- ښاد- خوشحال- مراد مند- (م- فارسی)-

شاداب:(شا-داب)اسم صفت- تروتازه- سېراب- (م- فارسی)-

شادان:(شا-دان)اسم صفت- خوشحال- (م- فارسی)-

شادانه:(شا-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بنګ دانه- بنګ دانه- جمع شادانې-

شادنامه:(شاد-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کامیابی یا خوشحالی بږل غږونه- جمع شادنامې- (م- فارسی)-

شادو:(شا-دو)اسم- واحد- مؤنث- بیزو- جمع شادوګان-

شاده:(شا-ده)اسم- واحد- مؤنث- عجوبه- تماشه-

شاډول:(شا-ډول)اسم- واحد- مذکر- شاډوله- دَ ګډا یو قسم- اتڼ-

شاډوله:(شا-ډو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شاډول-

شاډوله شونډوره:(شا-ډو-له-شون-ډه-وۀ-ره)اسم- واحد- مؤنث- بدرنګه ښځه- بدشکله ښځه- هغه ښځه چې بدرنګه وی او شونډې ئې هم غټې وی-

شاډیندک:(شا-ډین-دک)اسم صفت- الاکلنګ- غنجالې- دنګ- باټی چغ- شاډینګه- اندرچو-

شاډینګه:(شا-ډینګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- جمع شاډینګې- وګورئ شاډیندک-

شاذ:(شاذ)اسم- نایاب- قیمتی- کمیاب- (م- عربی)-

شاربل:(شار-بل)مصدر- (۱)شوملې کول- (۲)یو خبره زنګول- خبرې ته پس زرکول- خبره وړدول- (۳)دبچو راویستو په غرض دَ چرګې په اګو سینه مښل- شربل-

شاربلے:(شار-بۀ-لے)اسم مفعول- جمع شاربلی- مؤنث شاربلې- وګورئ شاربل-

شاربنه:(شار-بۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شاربل-

شاربونکے:(شار-بون-کے)اسم فاعل- جمع شاربونکی- مؤنث شاربونکې- وګورئ شاربل-

شارټ:(شارټ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مختصر- (۲)دَ بجلی دیکه- (م- انګریزی)-

شارع:(شا-رع)اسم صفت- (۱)لار ښونے- لارښود- دَ شریعت راوړونکے- (۲)اسم- لویه لار- باچاټی لار- (م- عربی)-

شارلتان:(شار-لۀ-تان)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې عالم نۀ وی او دَ عالمانو او پوهانو غندې خبرې کوی-

شارول:(شا-رول)اسم- واحد- مذکر- شاقول- د ګلکارانو اوزار چې دَ دېوال نیغ والے پرې معلوموے شی-

شاریز:(شا-ریز)اسم- واحد- دمذکر- دَ کور مخامخ خالی مېدان-

شاریزے:(شا-ری-زے)اسم- واحد- مذکر- ښارپناه- دَ ښار نه تاؤ راتاؤ غټ دېوال چې دَ حفاظت د پاره وی- جمع شاریزی-

شاریکر:(شا-ری-کر)اسم صفت- سندرغاړے- سندره ویونکے- سندربول-

شاړ:(شاړ)اسم صفت- مذکر- (۱)دَ اباد ضد- غېراباد- (۲)لټ- ناراسته- سست- کاهل- مؤنث شاړه-

شاړپار:(شاړ-پاړ)اسم صفت- (۱)ساده- جاهل- شاړ شپاړ- بې علمه- (۲)غېراباد-

شاړتوب:(شاړ-توب)اسم- شاړتیا- شاړوالے- بنجرتوب- غېرابادی-

شاړتیا:(شاړ-تیا)اسم- وګورئ شاړتوب-

شاړشپاړ:(شاړ-شه-پاړ)اسم صفت- وګورئ شاړپاړ-

شاړوالے:(شاړ-وا-لے)اسم- وګورئ شاړتوب-

شاړول:(شا-ړه-ول)مصدر متعدی- (۱) بنجرول- غېراباد کول- بې حاصله کول- (۲)په یو ځاې کښې استوګه پرېښول-

شاړون:(شا-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ شاړول-

شاړونکے:(شا-ړه-ون-کے)اسم فاعل- جمع شاړونکی- مؤنث شاړونکې- وګورئ شاړول

شاړونګ:(شا-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ شاړول-

شاړونه:(شا-ړه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شاړول-

شاړه:(شا-ړه)اسم صفت- مؤنث- (۱)غېراباده زمکه- بنجره زمکه- مېره- (۲)ړکره- (۳)سخته- خیګه- شدله-

ئ" (ځی-ړل)، ې"(هې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

شاړی:(شا-ړی)اسم- وګورئ اشاړی- ترخې زړې منډتې-
شاړېدل:(شا-ړې-دل)مصدر- (۱)غېرابادېدل- د نه کرلو په وجه عبث کېدل- بنجرېدل- (۲)الهٔ استوګې وتل-
شاړېدن:(شا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شاړېدل-
شاړېدنګ:(شا-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شاړېدل-
شاړېدونکے:(شا-ړې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شاړېدونکی- مؤنث شاړېدونکې- وګورئ شاړېدل-
شاړېدنه:(شا-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شاړېدل-
شاړېدهٔ:(شا-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ شاړېدل-
شاړے:(شا-ړے)اسم صفت- (۱)شړل بړل- کلیوال- غرځنے- (۲)سست- ناراسته
کاهل-
شاړے:(شا-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ښکاری ګروه هغه فرد چې ګوزار نهٔ کوی او د ښکاریانو شاشا ته روان وی او پرېوتے ښکار رانیسی- د ښکاریانو د پاره د مارغانو یا حیواناتو پاڅونکے- (۲)هغه کس چې د درو جنګ کونکیو پلو تر مینځه ګېر شی-
شاړے واړے:(شا-ړے-وا-ړے)اسم صفت- (۱)بې ډېه- بې بنده- لټ- کاهل- (۲)بنجر- غېراباد- بې فائدې-
شاذ:(شاذ)اسم صفت- کم- نایاب- لږ- (م- عربی)-
شاخوئ:(شا-خوئ)اسم صفت- شهزاده- (افغانستان)-
شاړه:(شا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- غشے- جمع شاړې-
شاش:(شاش)اسم- واحد- مذکر- موتیازې- واړهٔ بول- مُتیازی (م- فارسی)-
شاشوی:(شا-شوی)اسم صفت- شان وشوکت- دبدبه- ټره پره-
شاطر:(شا-طر)اسم صفت- (۱)د شطرنج ماهر- (۲)چالاک- (۳)واکې نیونکے- سائیس- د آس مخکښې خغلېدُونکے-
شاعر:(شا-عر)اسم صفت- شعر زیونکے- شعر لیکونکے- جمع شاعران- مؤنث شاعره- (م- عربی)-
شاعرانه:(شا-ع-را-نه)متعلق فعل- د شاعری سره متعلق- وګورئ شاعر-
شاعری:(شا-ع-ری)اسم- واحد- مؤنث- د شعرګوئی فن-
شاعمر:(شا-غ-مر)متعلق فعل- شامدام- په یو مخ- په مخه-
شاغ:(شاغ)اسم صفت- لوړ- دنګ-
شاغت:(شا-غت)اسم- واحد- مذکر- (۱) وګورئ شاغوت- (۲)اټه- ګټه- کون ګتی- کټمنډے- (۲)سپکاوے- (۳)چیږ-
شاغتول:(شا-غ-ته-زل)مصدر- (۱)کټمنډے کول- چاله ګټه ورکول- (۲)سپکاوے کول- (۳)چیږل-
شاغتون:(شا-غ-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ شاغتول-
شاغتونګ:(شا-غ-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ شاغتول-

شاغتونکے:(شا-غ-ته-زون-کے)اسم فاعل- جمع شاغتونکی- مؤنث شاغتونکې- وګورئ شاغتول-
شاغتونه:(شا-غ-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شاغتول-
شاغل:(شا-غل)اسم- مصروف- مشغول- (م- عربی)-
شاغله شاغے:(شاغ-له-شا-غے)اسم- ډېر په زړهٔ پورې-
شاغندل:(شا-غن-دل)اسم- واحد- مذکر- د اوړې په شان جړړې لرونکې یوه مشهوره باغی سبزی چې د پسرلی په موسم کښې کیږی او اومه خوړے شی- د نرګس د خاندان سره تعلق لری نباتاتی نوم سینټیلم البم (SANTALUM ALBUM)-
شاغوت:(شا-غوت)اسم- مذکر- ګټه- کون ګوتی- ګټه ورکونه- اټه-
شاق:(شاق)اسم صفت- مشکل- سخت- (م- عربی)-
شافع:(شا-فع)اسم صفت- شفاعت کونکے- (م- عربی)-
شافعی:(شا-ف-عی)اسم صفت- د اهل سنت د څلورم امام د امام شافعی رحمة الله علیه د مسلک پېروکار- (م- عربی)-
شاقول:(شا-قول)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شاروِل- (م- عربی)-
شاقه:(شا-قه)اسم صفت- د شاق مؤنث- سخته- ګرانه- ډېره مشکله- (م- عربی)-
شاکاسه:(شا-کا-سه)اسم- واحد- مؤنث- کټورے- لویه کاسه- لویه پیالی- جمع شاکاسې-
شاکر:(شا-کر)اسم صفت- شکر کونکے- شکر ایستونکے- ښهٔ منونکے- (م- عربی)-
شاکړوب:(شا-کړوب)اسم صفت- واحد- مذکر- شاټیټے- قبے- شابوټے- شاکړوپ- شاکړوبے- شاکړوپے-
شاکړوبے:(شا-کړو-بے)اسم صفت- وګورئ شاکړوب- جمع شاکړوبی-
شاکړوپ:(شا-کړوپ)اسم صفت- وګورئ شاکړوب-
شاکړوپے:(شا-کړو-پے)اسم صفت- وګورئ شاکړوب-
شاکړوپتوب:(شا-کړوپ-توب)اسم- شاکړوبوالے- شاکړوپتیا- قبے کېدنه-
شاکړوپوالے:(شا-کړوپ-وا-لے)اسم- وګورئ شاکړوپتوب-
شاکړوپتیا:(شا-کړوپ-تیا)اسم- وګورئ شاکړوپتوب-
شاکلنګ:(شا-کهٔ-لنګ-که)اسم- واحد- مؤنث- کرکره- یو قسم زانړه- جمع شاکلنګې- سائنسی نوم (ANTHROPOIDUS VIRGO)-
شاکوب:(شا-کوب)اسم صفت- شاټوغے- شاپوټے- شاکوبے- ملاټیټے- قبے- شاکوپ- شاکوپے-
شاکوبے:(شا-کو-بے)اسم صفت- وګورئ شاکوب- جمع شاکوبی-
شاکوپ:(شا-کوپ)اسم صفت- وګورئ شاکوب-
شاکوپے:(شا-کو-پے)اسم صفت- وګورئ شاکوپ-
شاکوکی:(شا-کو-کی)اسم- واحد- مؤنث- د جینکو یوه لوبه-
شاکوندی:(شا-کون-ډی)اسم- واحد- جمع- مؤنث- د ناک یو قسم-

شاکی:(شا-کی)اسمِ صفت- شکایت کونکے- شکایتی- (م- عربی)-
شاکت:(شا-کت)اسم- واحد- مذکر- شاغت- شاغوت- جمع شاکتونه-
شاګرد:(شا-ګرد)اسم- واحد- مذکر- (۱) زده کونکے- علم حاصلونکے- (۲)مُرید- چېلے- مؤنث شاګرده-
شاګردی:(شا-ګر-دی)اسم- د شاګرد کار-
شاګم:(شا-ګم)اسم- هغه نذر یا خېرات چې دَ تفاول پهٔ دود ورکول کیږي- (افغانستان)-
شاګوړلے:(شا-ګو-ړهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- اُرکوړے- دَ ماشومانو یوه لوبه-
شاګوړپے:(شا-ګوړ-پے)اسمِ صفت- وګوری ړک ړک-
شاګوړے:(شا-ګو-ړے)اسم- خرخوړے- خرخوړے- هغه شے چې دَ اَس یا اوښ پهٔ شا باندې دَ دې پاره اېښودے شي چې لهٔ زوره محفوظ وی-
شاګوم:(شا-ګوم)اسمِ صفت- شکوم- مجذوب- چپ چاپ- خاموش-
شاګۍ:(شا-ګۍ)اسم- واحد جمع مؤنث- (۱)دَ غرهٔ لمن- (۲)مقبره-
شاګۍ:(شا-ګۍ)اسمِ تصغیر- شاګوټې- وړوکې شا-
شال:(شال)اسم- واحد- مذکر- دَ وړی څادر- اُونی څادر- (م- فارسی)-
شا لګول:(شا-ل-ګ-ول)مصدر- (۱)ډډه وهل- تکیه لګول- (۲)دَ کشتی پهٔ لوبه کښې شا لګول دَ پړ کولو او مغلوبه کولو علامت ګڼلے شي-
شالګے:(شال-ګے)اسمِ تصغیر- وړوکے شال- جمع شالګی-
شالم:(شا-لم)اسم- واحد- مذکر- د پېښور د علاقې پهٔ سیمه یو سین چې د کابل دَ سیند یو ښاخ دے-
شالمۍ:(شال-مۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- هغه مرۍ چې زنانه ئې پهٔ لستوڼو ټک رهی-
شالمۍ وټۍ:(شال-مۍ-و-ټۍ)اسم- پهٔ لستوڼی بوټۍ کونه
شالنګ:(شا-لنګ)اسم- واحد- مذکر- اټال- دَ کار نه ایستلے- معطل- (۲)اسم- پهٔ لنډو فیصله- تاویل-(افغانستان)-
شالنګول:(شا-لنګ-ګه-ول)مصدر- دَ کار نه ایستل- اړپا کول- بې کاره کول- (افغانستان)-
شالنګون:(شا-لنګ-ګه-ون)حاصلِ مصدر- وګوری شالنګول-
شالنګونکے:(شا-لنګ-ګه-ون-کے)اسمِ فاعل- جمع شالنګونکی- مؤنث شالنګونکې- وګوری شالنګول-
شالنګونه:(شا-لنګ-ګه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوری شالنګول-
شالنګېدل:(شا-لنګ-ګې-دل)مصدر- بېکاره کېدل- اټاله کېدل-
شالنګېدن:(شا-لنګ-ګې-دن)حاصلِ مصدر- وګوری شالنګېدل-
شالنګېدنه:(شا-لنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوری شالنګېدل-
شالنګېدونکے:(شا-لنګ-ګې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع شالنګېدونکی- مؤنث شالنګېدونکې- وګوری شالنګېدل-
شالنګېدهٔ:(شا-لنګ-ګې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګوری شالنګېدل-
شالواک:(شال-واک)اسم- واحد- مذکر- وګوری کنګوسے-

شالوکی:(شا-لو-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- دَ چرچړې یو قسم-
شالولکے:(شا-لول-کے)اسم- واحد- مذکر- پرداره میړے- وزرلرونکے میړے-
شالونکینه:(شا-ل-ونګ-ګی-نه)اسم صفت- شا- شامیلا- لونګینه چې لونګین ئې پهٔ غاړه وی-
شالی:(شا-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم کشیده کاری- (۲)شولې-
شالیز:(شا-لیز)اسمِ صفت- دَ شال سره متعلق- وګوری شال-
شالیزار:(شا-لی-زار)اسم- هغه زمکه چې شولې پکښې کرلے شی- شولګره- شالیزاره-
شالیزاره:(شا-لی-زا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګوری شالیزار- جمع شالیزاری-
شالېسے:(شا-لې-سے)اسم صفت- ملاتړ- امدادی-
شالېلی:(شا-لے-لا)اسم- واحد- مؤنث- لېلیٰ- شالونکینه- دَ محبوبې د ښائست او حُسن وناز دَ پاره وئېلے شی-
شالې والې:(شا-لې-وا-لې)اسمِ صفت- شاولې واولې- خورووړ- بې وزنه- بې جوړه- بې سلیقې-
شالی:(شا-لی)اسم- واحد جمع- مؤنث- شولې- دَ غلې یو قسم-
شالی بالی:(شا-لی-با-لی)اسمِ صفت- عېش عشرت- مزې چرچې-
شاماخه:(شا-ما-خه)اسم- مؤنث- شموخه- یو قسم واښهٔ- شمخه- جمع شاماخې-
شامپیرک:(شام-مپی-رک)اسم- واحد- مذکر- خربوزه- نباتاتی نوم کؤکومس مېلو (CUCUMIS MELO)-
شامت:(شا-مت)اسم- (۱)بدنصیبی- بده ورځ- بدمرغی- بدبختی- اسکېرنه- (۲)اجل- پوره- مقرره-
شامتوره:(شا-مه- تو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګوری شامتوله- جمع شامتورې-
شامتوله:(شا-مه-تو-له)اسم- واحد- مؤنث- شامتوره- تونکه- قره قوس- دَ چرګانو یو قسم- جمع شامتولې-
شامدام:(شا-م-دام)متعلق فعل- مدام- تل- همېشه- هر وخت-
شامېته:(شام-ېې-ته)اسم- واحد-مؤنث- دَ یوې سبزی نامه-
شامل:(شا-مل)اسم- شریک- یو ځاې- پهٔ څهٔ کار کښې شریک- (م- عربی)-
شاملات:(شا-م-لات)اسم- شریکه- دَ شریکې زمکه- هغه زمکه چې دَ څو کورنیو، کلی یا خلقو شریکه وی-
شاملول:(شا-م-له-ول)مصدر- شریکول- داخلول- ننه ایستل- ګډول- یو ځاې کول-
شاملونکے:(شا-م-له-ون-کے)اسم فاعل- جمع شاملونکی- مؤنث شاملونکې- وګوری شاملول-
شاملونه:(شا-م-له-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوری شاملول-
شاملېدل:(شا-م-لې-دل)مصدر- داخلېدل- یو ځاې کېدل- ګډېدل- خلط ملط کېدل-

"ې" (څې-رل)، "ې"(هې-ره-ول)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګوری تشریحات صفحه ۱

شاملېدن:(شا-م-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شاملېدل-

شاملېدنه:(شا-م-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شاملېدل-

شاملېدونکے:(شا-م-لې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شاملېدونکی- مؤنث شاملېدونکې- وګورئ شاملېدل-

شاملېدهٔ:(شا-م-لې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ شاملېدل-

شامنتړه:(شا-من-ته-ړه)اسم- واحد- مؤنث- شامتهه- شوميتې- هغه ښخه چې شوميت يې راغلے وی- (افغانستان)-

شامه:(شا-مه)اسم- واحد- مؤنث- د بويولو طاقت- د پينځو حواس خمسه يو حس- د شامې حس- (م- عربی)-

شامه توره:(شا-مه-تو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شامتوره-

شامي:(شا-مي)صفت- (۱)د شام ملک سره متعلق- (۲)تور- (۳)يو قسم کباب-

شاميانه:(شام-يا-نه)اسم- واحد- مؤنث- لويه خېمه چې د څلورو ستنو په ذريعه لکه د چت ودرولے شي- تمبو- تجير- لويه خېمه- (م- فارسی)-

شاميت:(شا-مي-يت)اسم- واحد- مذکر- بدقسمتي- شامت- شوميت- نصيبه- بدمرغي- اسکېرنه-

شامي کباب:(شا-مي-ک-باب)اسم- واحد جمع- مذکر- د کبابو يو قسم-

شامي:(شا-مي)اسم- واحد جمع- مؤنث- د سړی تابوت- مړستون- لحد- قبر-

شان:(شان)حرف تشبيه- (۱)څېر- لکه- غندې- لکه څهٔ شان- څرنګ- (۲)لوئ والے- عزت- بزرګي- د ډول يا ډولکي يو قسم سُر(اسم)- (م- عربی)-

شانته:(شان-ته)حرف تشبيه- پهٔ شان- دغه رنګ- دغسې-

شانتې:(شان-تې)اسم- واحد- مؤنث- هغه پوله چې د اُبو اوچتولو د پاره اچولے شوې وی-

شاندان:(شان-دان)اسم- واحد- مذکر- سېل- د مرغانو هجوم-

شاندانه:(شان-دا-نه)اسم صفت- (۱)خوشحاله- (۲)منتخبه-

شاندل:(شان-دل)مصدر- وګورئ شنېدل-

شانډ:(شانډ)اسم صفت- شنډ- شنډی- (۲)شاړ- شړ- غېرآباد-

شانډوله:(شان-ډو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څوخه- چوخه- پشک- خارښ- مرض- (۲)اورونکے- يو قسم لوبه- جمع شانډولې-

شانړی:(شان-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- شنړی- د بکيانې تخم- بکيانه- نباتاتی نوم د پاره وګورئ بکيانه شنړی-

شانشورت:(شان-شو-رت)اسم صفت- (۱)سست پست- نامرد- ناشولت- (۲)اُبرې- اُوبزن-

شان وشوکت:(شان-و-شو-کت)اسم صفت- جاه وجلال- پرق پروق- رعب- دبدبه- قدر عزت- درز دروز- لوئ دبدب- (م- عربی- فارسی)-

شانکوړے:(شان-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- برجسته- غوره- ژتلے- (۲)پتاک- کوبے- کوپے-

شانکه:(شانک-که)اسم- واحد- مؤنث- درې ښاخی- شانکی- درې ښاخې-

شانکی:(شانک-کی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شانکه-

شانوشانوتپيک:(شا-نو-شا-نو-تپيک)د خوشحالی کلمه- دا کلمه هغه وخت وئيلے شي چې ماشومان څهٔ وموهی-

شانه:(شا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ږومنځ- (۲)اوږه- ولے- (۳)د جولاګانو يو اوزار چې د کړی تارونه پرې اوروی- (م- فارسی)-

شانه بين:(شا-نه-بين)اسم صفت- فال کتونکے- فال ګر- (م- فارسی)-

شانه وانه:(شا-نه-وا-نه)اسم- پهٔ مېکز مکېز تلنه- شاولے- واولے- نازو ادا- ناز نخرې- (۲)خور وور-

شانه ورانه:(شا-نه-ورا-نه)اسم- پهٔ نازو ادا ګرځېدنه- شانه وانه-

شانې:(شا-نې)متعلق فعل- وګورئ شانته-

شانے:(شا-نے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم واښهٔ چې پهٔ ولو کښې شين کيږی-

شانړ شانړ:(شانړ-شانړ)اسم صوت- شنړ شنړ- د تېزې سيلی پهٔ الوتو د وُنو او پاڼو نه راختونکے اواز-

شاړخوا:(شاړ-خوا)اسم صفت- (۱)اخوا ديخوا- ګېر چاپېر- (۲)مرسته- حمايت- عموماً دبو معنو کښې افغانستان کښې استعماليږی-

شاړړے:(شا-ړهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- ګنده خړے- ګنګه خړے- سېلاب راوړی لرګے- جمع شاړړی-

شاړل:(شا-ړل)اسم- واحد- مذکر- شاتول- وګورئ شاړول-

شاولې واړلې:(شاو-لې-واړ-لې)اسم صفت متعلق فعل- (۱)خرانګې ورانګې- دانه وانه- (۲)ستومانه-

شاوی:(شا-وی)اسم- واحد- مذکر- کُنه- سومبی- غره-

شاه:(شاه)اسم- واحد- مذکر- (۱)باچا- بادشاه- خودمختار- اختيار مند- محافظ- (۲)دا لفظ د معشوقې د پاره هم استعماليږی- (م- فارسی)-

شاه باز:(شاه-باز)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپين باز- (۲)مضراب- [۴]هغه ډکے چې رباب پرې غږولے شي-

شاه تره:(شاه-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شاتره-

شاه خلمے:(شاه-خل-مے)اسم صفت- (۱)ښائسته ځوان- د ملازو ځوان- (۲)د وادهٔ زلمے- جمع شاه خلمی-

شاه خېل:(شاه-خېل)اسم صفت- (۱)شانی خېل- مصلی- جاروکښ- هغه کس چې پهٔ درمن کښې رشه صفا کوی- جمع شاخېلان-

شاه خېله:(شاه-خې-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- چواړی- چنګړی- توره- چواړی- د شاه خېل ښځه چې تمبلونه او شکری وغېره جوړوی-

شاه رګ:(شاه-رګ)اسم صفت- شريان- هغه غټ رګ چې د هغه پهٔ برکت نورو رګونو ته وينه رسی- د مری رګ- ستر رګ-

شاه زاده:(شاه-زا-ده)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شهزاده-

شاه زادګی:(شاه-زاد-ګی)اسم- واحد جمع- مؤنث- د بادشاه لور-

شاه سور:(شاه-سور)اسم صفت- شاه سوار-

شاه تیرکے:(شاه-تیر-کے)اسم تصغیر- د چت ورکوټې کړی- وړوکے تیر یا شهتیر-

شاهد:(شا-هد)اسم صفت- ګواه- ګواهی کونکے- جمع شاهدان- (م- عربی)-

شـاهـده:(شـا-ه-ده)اسم- واحـد- مؤنث- معـشوقـه- محـبوبـه- شهـا- (م- عربی- فارسی)-

شاهدی:(شا-ه-دی)اسم- ګواهی- شهادت-

شاهکار:(شا-ه-کار)اسم- واحد- مذکر- بهترین تخلیق- غوره لیک یا تصویر وغیره-

شاهنشاه:(شا-هن-شاه)اسم- واحد- مذکر- (۱)بادشاه- د بادشاهانو بادشاه-

شاهوکار:(شا-هو-کار)اسم- واحد- مذکر- وګوری ساهوکار-

شاهی:(شا-هی)اسم صفت- (۱)د بادشاه متعلق- (۲)د بادشاه په شان خوئ بوئ لرونکے- (۳)باچائی- (۴)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم رخت-

شاهین:(شا-هین)اسم- واحد- مذکر- یو قسم تورسترګے ښکاری مارغه-

شاهین په ننکو:(شا-هین-په-نن-کو)اسم- واحد- مذکر- د ملګانو یوه لوبه- ټوپی کنه-

شائی خیل:(شا-ئی-خیل)اسم- واحد- مذکر- وګوری شاخیل-

شائع:(شا-ئع) صفت/مفعول- خور شوے- خپور شوے- (م- عربی)-

شائق:(شا-ئق)اسم صفت- آرزومند- خواهشمند- مشتاق- (م- عربی)-

شاید:(شا-ید)متعلق فعل- باید- ممکن- ښائی-

شاۍ باۍ:(شا-ۍ-با-ۍ)اسم صفت- عیش عشرت- مزې چرچې-

شب:(شب)اسم- واحد- مؤنث- شپه- (م- فارسی)-

شباب:(شه-باب)اسم- واحد- مذکر- ځلمیتوب- د ځوانۍ زمانه- ځوانی- ځلمینه-

شب افروز:(شب-اف-روز)اسم- سپوږمۍ- اورلورکے- شپه روښانونکے- (م- فارسی)-

شب برات:(شب-به-رات)اسم- واحد- مذکر- د شوقدر شپه- (م- فارسی)-

شباهت:(ش-با-هت)اسم- یکسانیت- یو والے- شکل- (م- عربی)-

شبپرک:(شب-پ-رک)اسم- واحد- مذکر- ښاپیرک- چمبپرک- کټبیز- ګکالے- (م- فارسی)-

شبخون:(شب-خون)اسم- واحد- مذکر- د شپې د دشمن په کور حمله کول- داړه- د شپې مرګو- د شپې چپاؤ- یرغل- (م- فارسی)-

شب خیزی:(شب-خي-زی)اسم- واحد- مؤنث- د نمانځه د پاره د شپې پاڅېدنه-

شبره تبه:(ش-ب-ره-ته-به)اسم صفت- شبیریزه- شبیره تبه-

شبرے:(شب-رے)اسم- واحد- مذکر- شمکور- شبکور- هغه ځوک چې د شپې ې نظر نه لګی-

شبستان:(ش-بس-تان)اسم- واحد- مذکر- د شپې د استوګې ځاې- د اوده کېدو ځاې- (م- فارسی)-

شبشے:(شب-شے)اسم- واحد- مذکر- خړ رنګ لرونکے یو قسم واښه-

شبقدر:(شب-قه-در)اسم- واحد- مذکر- شوقدر- هغه مبارکه او بزرګه شپه چې پکښې د عامې عقیدې مطابق د مخلوق رزق او برخې لیکلے کیږی-

شب کور:(شب-کور)اسم صفت- شمکور-

شبکه:(ش-به-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جارلکې- جالی- (۲)تور- د کبانو د نیولو جال-

شب ګرد:(شب-ګرد)اسم صفت- اواره ګرد- د شپې ګرځېدونکے- (م- فارسی)-

شب ګښت:(شب-ګښت)اسم- شب کشت- د شپې د څوکی په عرض ګرځېدنه- (م- فارسی)-

شبګیر:(شب-ګیر)اسم- شپه روڼونه- شوګیر- (م- فارسی)-

شبنم:(شب-نم)اسم- واحد- مذکر- پرخه- (م- فارسی)-

شبو:(شب-بو)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم سپین رنګ لرونکے ګل چې د شپې خوشبوئی پیدا کړی- (م- فارسی)-

شبه:(ش-به)اسم- واحد- مؤنث- شبیه- لازه- کړی- لحظه- (۲)د باران شېبه- (۳)شک- ګومان- شک شوبه- (۴)احتمال- (۵)نقلی جوهر- پوت- (۶)په شان- مشابه- شبه رو- (د ۳-۶ م- عربی)-

شبهه:(شب-هه)اسم- واحد- مؤنث- شک- وهم- په زړه کښې چا ته خبرې پیدا کونه- (م- عربی)-

شبینه:(ش-بی-نه)صفت- شپې سره متعلق- (م- فارسی)-

شبیه:(ش-بیه)اسم- تصویر- نظر- (م- عربی)-

شبی:(شه-بی)اسم- واحد- مؤنث- ګل شبو- د شبو د ګل نوم- وګوری شبو-

شبے:(شه-بے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم واښه- جمع شبی-

شپ:(شپ)لاحقه- د کپ سره راتلونکې لاحقه-

شپاړس:(شپا-ړس)اسم عدد- شپږ او لس- (۱۶)-

شپاړسم:(شپا-ړ-سم)اسم عدد- د ۱۶ د هندسې صفتی شکل-

شپاړسمه:(شپا-ړ-سه-مه)اسم عدد- د ۱۶ د هندسې د صفتی شکل مؤنث-

شپاړس نیم:(شپا-ړس-نیم)اسم عدد- نیم او شپاړس- د ۱۷ نه نیم کم-

شپال:(شپال)اسم- شپول-

شپالی:(شپا-لی)اسم- واحد- مؤنث- تمبلو- تامبو- تمبو-

شپانغی:(شپان-غی)اسم- واحد- مؤنث- د کونګی غندې یو خړرنګه مرغی چې خوراک پسې د شپې ګرځی د دې مارغه خله ډېره لویه وی- شپنغود- شپانه غود-

شپانه بنی:(شپا-نه-به-نی)اسم- د غوزې یو قسم چې ازغی لری-

شپانه پنډے:(شپا-نه-پن-ډے)اسم- یو قسم واښه-

شپانه پونډۍ:(شپا-نه-پون-ډۍ)اسم- یو قسم بوټے-

شپانه غود:(شپا-نه-غود)اسم- واحد- مذکر- وګوری شپانغی-

شپږ:(ش-پږ)اسم- (۱) هغه سړے چې پنجه کښې ې شپږ ګتې وی- شپږ ګتے-

ې (ځي-رل)، ي(هي-ره-ول)، ی(پیا-لی)، ے(تن-دے) تفصیل د پاره وګوری تشریحات صفحه ۱.

(۲)شاړ- کنواړ- شړ-

شپږن:(شپه-ږن)اسم- وګورئ شپږن-

شپږ:(شپږ)اسم- د پينځو او اوو تر مينځه عدد-

شپږاتيا:(شپږ-ات-يا)اسم- شپږ د پاسه څلور شلې- څلور کم سل- (۸۶)-

شپږاتيايم:(شپږ-ات-يا-يم)اسم عدد- د شپږ او د اتيا هندسي صفتي شکل- (۸۶)-

شپږاتيايمه:(شپږ-ات-يا-يۀ-مه)اسم عدد- د ۸۶ د هندسي مؤنث صفتي شکل-

شپږاويايم:(شپږ-او-يا-يم)اسم عدد- د شپږ او د اويا د هندسي صفتي شکل-

شپږاويايمه:(شپږ-او-يا-يۀ-مه)اسم عدد- د ۷۶ د هندسي مؤنث صفتي شکل-

شپږپريز:(شپږ-پ-ريز)اسم صفت- د شپږو مورګو او پرو لرونکے-

شپږپنځوس:(شپږ-پن-خوس)اسم عدد- شپږ او پنځوس- (۵۶)-

شپږپنځوسم:(شپږ-پن-خو-سم)اسم عدد- د شپږو او پنځوسو د هندسي صفتي شکل-

شپږپنځوسمه:(شپږ-پن-خو-سۀ-مه)اسم عدد- د ۵۶ د هندسي مؤنث صفتي شکل-

شپږتړ:(شپږ-تړ)اسم- واحد- مذکر- ششدر- د نرد يوه لوبه-

شپږڅلويښت:(شپږ-څل-ويښت)اسم عدد- شپږ او څلويښت (۴۶)-

شپږڅلويښتم:(شپږ-څل-ويښ-تم)اسم عدد- د شپږو او څلويښتو د هندسي صفتي شکل-

شپږڅلويښتمه:(شپږ-څل-ويښ-تۀ-مه)اسم عدد- د ۴۶ د هندسي مؤنث صفتي شکل-

شپږځنډے:(شپږ-ځن-ډے)اسم صفت- د شپږو کونټونو لرونکے-

شپږخاتونے:(شپږ- خا-تو-نے)اسم صفت- د شپږو ستورو ټولے- سپوږمۍ، مشتري، زهره، عطارد، زحل او مريخ-

شپږديرش:(شپږ-دېرش)اسم عدد- پينځۀ دېرش او يو- (۳۶)-

شپږديرشم:(شپږ-دېر-شم)اسم عدد- د شپږ او د دېرشو د هندسي صفتي شکل-

شپږديرشمه:(شپږ-دېر-شۀ-مه)اسم عدد- د ۳۶ د هندسي مؤنث صفتي شکل-

شپږوزے:(شپږ-ږه-زے)اسم- واحد- مؤنث- هغه تماچه چې شپږ ږزې کوي-

شپږشپېتم:(شپږ-شپې-تم)اسم عدد- د شپږ او د شپېتۀ د هندسي صفتي شکل- (۶۶)-

شپږشپېتمه:(شپږ-شپې-تۀ-مه)اسم عدد- د ۶۶ د هندسي مؤنث صفتي شکل-

شپږشپېتۀ:(شپږ-شپې-تۀ)اسم عدد- شپږ او شپېتۀ-(۶۶)-

شپږګټے:(شپږ-ګ-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- شپږ ګټې لرونکے- جمع شپږ ګټي-

شپږګټے:(شپږ-ګ-ټے)صفت- شپږ ګټونه لرونکے شکل-

شپږګټيز:(شپږ-ګ-ټيز)صفت- وګورئ شپږګټے-

شپږګون:(شپږ-ګون)اسم- د شپږو هندسه لرونکے-

شپږم:(شپه-ږم)اسم عدد- د شپږ د هندسي صفتي شکل-

شپږن:(شپه-ږن)اسم صفت- (۱)هغه سړے چې پګښې ږېرې سپږې وي- شپږن- (۲)سخاچن- ګنده-

شپږنوي:(شپږ-نه-وي)اسم عدد- شپږ او نوي- (۹۶)-

شپږنويم:(شپږ-نه-وي-يم)اسم عدد- د شپږو او نوي د هندسي صفتي شکل-

شپږويشت:(شپږ-ويشت)اسم عدد- شپږ او شل (۲۶)-

شپږويښتم:(شپږ-ويښ-تم)اسم عدد- د شپږو او د شلو د هندسي صفتي شکل-

شپږويشتمه:(شپږ-ويش-تۀ-مه)اسم عدد- د ۲۷ د هندسي مؤنث صفتي شکل-

شپ شپ:(شپ-شپ)اسم- اني باني- ټال مټول-

شپشترے:(ش-پش-تۀ-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شپشته-

شپشتو:(شپش-تو)اسم- وګورئ تيربيز- (افغانستان)-

شپشتو:(ش-پش-تو)اسم- وګورئ خلتکه-

شپشته:(شپش-ته)اسم- واحد- مؤنث- د کډو بيزو د مخکو پښو مړوکے چې ملکان پرې نڅې کوي- ببړۍ-

شپشته:(شپش-ته)اسم- واحد- مؤنث- پيشترے- شپيشترے- يو بوټے چې د شوتلو پۀ شان پاڼې نيسي او ساګ ئې ډېر خونده ور وي- شپشترے- شيشتے ساګ- اخنک- د نباتاتي نوم د پاره وګورئ اخنک-

شپشتي:(شپش-تي)اسم- واحد- مؤنث- پۀ سپښتو يا ببړيو کېدونکې د ملکانويوه لوبه-

شپشتے:(شپش-تے)اسم- واحد- مذکر- ارغند- مردکے- سپښته- د غزانو تېک-

شپک:(ش-پک)اسم- ټټو- خرۀ-

شپلو:(شپ-لو)اسم- سوړې- غارونه-

شپلينړے:(شپلين-ړے)اسم- واحد- مؤنث- د ټپوس د کورنۍ يو ارزان او بې کاره مارغۀ- (افغانستان)-

شپنغوړ:(شپن-غوړ)اسم- شپانغۍ- د يو مارغۀ نوم چې د شپې شپېلے وهي- شپنغوده-

شپنغوده:(شپن-غو-ده)اسم- واحد- مؤنث- د شپنغوړ مؤنث- وګورئ شپنغوړ-

شپنغېدی:(شپن-غې-دي)اسم- واحد- مؤنث- شپنغېدی- شپنغوده- يو قسم مرغۍ- وګورئ شپانغۍ-

شپنکے:(شپن-کے)اسم- واحد- مذکر- شپونکے- کډې بيزې څرونکے- جمع شپنکي/شپنکيان-

شپنکيري:(شپن-ګي-ري)اسم- شپون توب- د کډيو بيزو څرونه-

شپنکۍ:(شپن-ګۍ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شپنغوړ-

شپنکے:(شپن-ګے)اسم- زلمے شپون-

شپنه:(شپ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د شپون مؤنث- (۲)يو قسم وابښۀ چې پاڼې ئې نرۍ نرۍ وي او خوند ئې خوږ وي-

شپني:(شپه-ني)اسم- شپونتوب- چوپاني-

زبر "(خ-بۀ-ره)"، زورکے "(شل)"، پېش "(نو-کا-ره)"، زېر "(ک-تاب)"، جزم "(شکوڼ)"، "ۀ"(ز-ړه)، "ۀ"(ږو-بې-دۀ)

شپنے:(شپه-نے)اسم صفت- بېګانے- (عامیانه)-

شپوړی:(شپو-ړی)اسم- مؤنث- (۱)وګورئ شپېږې- (۲)پټوکه- اُوخکی-

شپول:(شپول)اسم- واحد- مذکر- (۱)حلقه- هاله- (۲)وېره- بار- احاطه- د ګډو بزو د ساتنې لهٔ ځاې تاؤشوے د غنو کېږ-

شپولغالے:(شپول-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه ځاې چې د شپې پکښې ګډې بزې ساتلے شی-

شپولکے:(شپول-کے)اسم تصغیر- وړوکے شپول-

شپون:(شپون)اسم- واحد- مذکر- د ګډو بزو ساتونکے- د ګډو بزو څرونکے- جمع شپانهٔ.

شپونتوب:(شپون-توب)اسم- واحد- مذکر- چوپانی- د شپون کسب- شپونتیا-

شپونتیا:(شپون-تیا)اسم- وګورئ شپونتوب-

شپونکے:(شپون-کے)اسم تصغیر- وړوکے شپون- د ګډو بزو څرونکے-

شپویه:(شپو-یه)اسم- شفع- شفعه- حق- شفعْ- د څهٔ څیز پهٔ قیمت د اخستلو مقدم حق- (م- عربی)-

شپوناکه:(شپو-نا-که)اسم- واحد- مؤنث- د جامې شړېدلے ځاې-

شپه:(شپه)اسم- واحد- مؤنث- د نمر پرېوتو نه تر سحره پورې وخت-

شپه:(شپه)اسم- شپه- شپون- (افغانستان)-

شپه تېری:(شپه-تې-ری)اسم- شپه تېرونه- شپه کونه-

شپه تېرے:(شپه-تې-رے)اسم- هغه سړے چې بې کاره شپه تېره وی-

شپه ړوندی:(شپه-ړون-دی)اسم- د شمکوری مرض-

شپه ړوندے:(شپه-ړون-دے)اسم- واحد- مذکر- شبکور- شمکور- هغه څوک چې د شپې ئې نظر نهٔ لګی-

شپه ړونے:(شپه-ړو-نے)اسم- واحد- مذکر- ټوله شپه پهٔ ویښه تېرونکے-

شپیانکه:(شپ-یانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- د خړ رنګ دانې لرونکے یو بوټے چې د معدې د درد د پاره پکارولے شی- جمع شپیانکې-

شپیانه:(شپ-یا-نه)اسم- مؤنث- (۱)شرم- سپکه- ندامت- خجالت- (۲)تېرغمی- زلندتوب- ناتار- تاړاک- (۳)ظلم وستم- تطاول- (افغانستان)-

شپېتم:(شپې-تم)اسم عدد- د شپېتو د هندسې صفتی شکل-

شپېتمه:(شپې-ته-مه)اسم عدد- د شپېتو د هندسې د صفتی شکل مؤنث-

شپېته:(شپې-ته)اسم- واحد- مؤنث- نوتنکے- د لرګی معمولی ټوکړه چې پهٔ چوړ کښې د تینګولو د پاره ورکولے شی- شپېتی- شپېشتے- شپېتے- جمع شپېتې-

شپېتهٔ:(شپې-تهٔ)اسم عدد- درې شلې- پنځوس او لس- (۶۰)-

شپېتی:(شپې-تی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شپېته-

شپېتے:(شپې-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شپېشرے- جمع شپېتی-

شپېخر:(شپې-خر)اسم- د شپې آخره حصه-

شپېړن:(شپې-ړن)اسم صفت- بوښناک- بدبو کونکے-

شپېړنه:(شپې-ړهٔ-نه)اسم صفت- مؤنث- چټله او بېکاره- خیرنه-

شپېړه:(شپې-ړه)اسم- پېړه- جمع شپېړې-

شپېشترے:(شپېش-تهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ساګ- پیشترے- شپېتے- شپېشتے- شپېشتکه- اُخنک- شپېشتلکه- جمع شپېشتری- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ اخنک-

شپېشتکه:(شپېش-ته-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شپېشترے- جمع شپېشتکې-

شپېشتلکه:(شپېش-تله-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شپېشترے-

شپېشتے:(شپېش-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شپېشترے- جمع شپېشتی-

شپېشتے:(شپېش-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شپېته-

شپېلغه:(شپې-له-غه)اسم- واحد- مؤنث- څرمن- شولغه- جمع شپېلغې-

شپېلغے:(شپېل-غے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم صحرائی مرغی- جمع شپېلغی-

شپېلغے:(شپې-لهٔ- غے)اسم- واحد- مذکر- شمکور- شبکور- شبرے- جمع شپېلغی- مؤنث شپېلغی-

شپېلک:(شپې-لک)اسم- واحد- مذکر- لهٔ خلې وتونکے اواز- شپېلے-

شپېلکے:(شپېل-کے)اسم تصغیر- د شپېلی اسم تصغیر- نرے وړوکے شپېلے- جمع شپېلکی-

شپېلل:(شپې-لل)مصدر- د خوراک څهٔ څیز پهٔ خلهٔ راکښل- لهٔ ډوکی نلے پهٔ خلهٔ راکښل- شپېلول- د خوراک شے د ساه پهٔ زور خلې ته راکښل-

شپېللے:(شپې-لهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شپېللی- مؤنث شپېللې- وګورئ شپېلل-

شپېلندر:(شپې-لن-دړ)اسم صفت- شمکور-

شپېلندو:(شپې-لن-دو)اسم صفت- شپېلے وهونکے-

شپېلنه:(شپې-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شپېلل-

شپېلول:(شپې-له-ول)مصدر- وګورئ شپېلل-

شپېلولے:(شپې-له-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شپېلونکی وګورئ شپېلول-

شپېلونکے:(شپې-لون-کے)اسم فاعل- جمع شپېلونکی- مؤنث شپېلونکې- وګورئ شپېلول-

شپېلونه:(شپې-لهٔ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شپېلول-

شپېلیمار:(شپې-لی-مار)اسم صفت- شپېلے وهونکے- شپېلی غږونکے- جمع شپېلیماران-

شپېلی:(شپې-لی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)د تماچې یا ټوپک نلی- (۲)د موسیقی آله چې پهٔ خلهٔ غږولے شی-

شپېلے:(شپې-لے)اسم- واحد- مذکر- لهٔ خلې وتلے د شپېلی د اواز پهٔ رنګ اواز- جمع شپېلی-

شپېنے:(شپې-نے)اسم صفت- بېګانے- د شپې- (عامیانه)-

ی (څی-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

شت:(شت)اسم- شتکه- تېزرفتار- چال- تېزه منډه- (دي سره ژمل مصدر راځي)-

شت:(شت)اسم- د هسک یو قسم- پچه- ایسک-

شتا:(ش-تا)اسم صفت- بې حیا- چالاک- مکار- شریر-

شتاب:(ش-تاب)اسم صفت- (۱)تلوار- جلتي- سُرعت- بیړه- (۲)بې قراري (م- فارسي)-

شتابه:(ش-تا-به)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شتاحه-

شتاتوب:(ش-تا-توب)اسم- بې حیائي- شرارت-

شتامبې:(شتام-بې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د کاڼي بغرې- برغې-

شتاحه:(ش-تا-حه)اسم صفت- واحد- مؤنث- کاسیره ښځه- شریره ښځه- شتایه- شتاوه- جمع شتاحې-

شتاشه:(ش-تا-شه)اسم صفت- نخره بازه- شریره-

شتاوالے:(ش-تا-وا-لے)اسم- شرارت- بې حیائي- شتاتوب-

شتاوه:(ش-تا-وه)اسم صفت- وګورئ شتاحه-

شتایه:(ش-تا-یه)اسم صفت- وګورئ شتاحه-

شتاني:(ش-تا-ني)اسم- بې حیائي- شرارت-

شتر:(شُ-تر)اسم- واحد- مذکر- اوښ- زردې پښې لرونکے لوړ سرے- (م- فارسي)-

شتراړ:(شت-راړ)اسم صوت- د اُبو د شړاري اواز-

شترپوَمه:(شُ-تر-پو-مه)اسم- واحد- مؤنث- ډېره پویه- ډېر علم- (افغانستان)-

شترک:(شت-رک)اسم- واحد- مذکر- د اُبو چپه- دَ فوارې نه وتونکې چپه- شترکه-

شترکه:(شت-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شترک-

شترمرغ:(ش-تر-مرغ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مارغهٔ چې افریقه او نورو رېګستاني ملکونو کښې پیدا کېږي- (م- فارسي)-

شتري:(شتهٔ-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ اوښانو دَ وړي نه جوړه شوې کپړه- (۲)دَ اوښانو دَ وړي په شان رنګ لرونکې کپړه-

شتک شتک:(شه-تک-شه-تک)اسم صوت- دَ نر ځاروي په ماده ځاروي دَ خېژولو دَ پاره زرکونکے آواز- تبغ تبغ-

شتکه:(شه-تهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- چخته- خچکه- پتک- دَ ماشومانو دَ لوبو دَ لرګي کیتي- پیتي- جمع شتکې-

شتکه:(شت-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شت-

شتوالے:(شت-وا-لے)اسم- خغلېدنه- شت وهنه- منډه وهنه-

شتهٔ:(شتهٔ)اسم- (۱)دولت- جائیداد- مال- (۲)موجودګي-

شتهٔ کونه:(شتهٔ-کو-نه)اسم- شته کونه- ایجاد- (افغانستان)-

شتهٔ من:(شتهٔ-من)اسم صفت- دولتمند- مالدار- شتهٔ لرونکے-

شتهٔ منتوب:(شتهٔ-من-توب)اسم- دولتمندي- مالداري- شتهٔ منتیا- شتهٔ والے-

شتهٔ منتیا:(شتهٔ-من-تیا)اسم- وګورئ شتهٔ منتوب-

شتهٔ مني:(شتهٔ-مهٔ-ني)اسم- دولت مندي- مالداري-

شتهٔ والے:(شتهٔ-وا-لے)اسم- وګورئ شتهٔ منتوب-

شتي اپره:(شهٔ-تي-اپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- ګولي ړندا- دَ ماشومانو یوه لوبه چې په شتي او اپړه کېږي-

شتې:(شهٔ-تې)اسم- دَ اُبو دارې- دَ اُبو ځاڅکي-

شتۍ:(شه-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ جوارو توکه- (۲)دَ تالاؤ دَ اُبو دَ پاسه دَ شین رنګ خګ-

شتۍ:(شه-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو په لوبه کښې استعمالېدونکے دَ لرګي وړه ټوکړه- ګلی- ګولی- دَ شتي اپړه یا ګلي ړنډۍ دَ لوبې ګلی-

شتۍ:(شه-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- شیتۍ- الوتونکے غشے- دَ اتش بازۍ یوه لمبکه-

شټامپ:(شټامپ)اسم- واحد- مذکر- مُهر- سټمپ- دَ قبالې کاغذ- پوخ کاغذ- (م- انګریزي)-

شټرکه:(شټ-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- شته- دَ اُبو داره-

شټل:(ش-ټل)اسم صفت- ناراسته- بې ډبه- بې شعوره-

شټلکے:(شه-ټل-کے)اسم تصغیر- دَ شټل اسم تصغیر- وګورئ شټل-

شټلي:(شهٔ-ټهٔ-لي)اسم- دَ لاسو پښو وهنه- پړکونه وهنه-

شټېدل:(شهٔ-ټې-دل)مصدر- پړتېدل- څرکېدل- پړقېدل-

شټېدن:(شهٔ-ټې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شټېدل-

شټېدنګ:(شهٔ-ټې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شټېدل-

شټېدنه:(شهٔ-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شټېدل-

شټېدونکے:(شهٔ-ټې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شټېدونکي- مؤنث شټېدونکې- وګورئ شټېدل-

شجاع:(ش-جاع)اسم صفت- زړهٔ ور- توروزن- دلاور- بهادر- شجاعت مند- (م- عربي)-

شجاعت:(ش-جا-عت)اسم- زړهٔ ورتیا- توروزني- بهادري- (م- عربي)-

شجر:(شه-جر)اسم- واحد- مذکر- وُنه- (م- عربي)-

شجره:(ش-جه-ره)اسم- واحد- مؤنث- اصل معنیٰ وُنه- نسب نامه- دَ یو خاندان دَ نومونو سلسله وار فهرست- جمع شجرې- (م- عربي)-

شخرلے:(شه-خر-لے)اسم- واحد- مذکر- جمع شخرلي- وګورئ څورلے-

شخولے:(شه-خو-لے)اسم- واحد- مذکر- جمع شخولي- وګورئ څورلے-

شڅرلے:(شه-څر-لے)اسم- واحد- مذکر- جمع شڅرلي- وګورئ څورلے-

شڅړلے:(شه-څړ-لے)اسم- واحد- مذکر- جمع شڅړلي- وګورئ څورلے-

شڅورلے:(ش-څور-لے)اسم- واحد- مذکر- جمع شڅورلي- وګورئ څورلے-

شحم:(ش-حم)اسم- واحد- مذکر- وازده- وازګه- (م- عربي)-

شخ:(شخ)اسم صفت- دَ څهٔ څیز یا دَ تیزې هوا آواز- شخار-

شخار:(ش-خار)اسم صوت- وګورئ شخ-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-ښې-دهٔ)

شخار:(شه-خار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مالش دَ پاره پکاریدونکی دارو- (۲)بت- بتي- استخار- اشقار-

شخ پخ:(شخ-پخ)اسم صوت- دَ هوا یا دَ تبی په وخت دَ غوړو آواز-

شخت:(شخت)اسم- سختی- دَ تنګدستۍ وخت-

شختولے:(شخ-تو-لے)اسم- دَ وريښمو يو جالۍ چې دَ وادهٔ په وخت ناوې ته غوړولے شي- جمع شختولي-

شخړه:(شخهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جنجال- نښته- فساد- (۲)کټه ګوټه- (۳)عبث- جمع شخړې-

شخړې شخړې:(شخهٔ-ړې- شخهٔ-ړې)اسم- کټه ګوټه-

شخشول:(شخ-شول)اسم- واحد- مذکر- خولنه- پیکړه-

شخشولې:(شخ-شو-لې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)جُرابې- دَ جرابو په ځاې استعمالیدونکې دوه ټوکړې- (۲)پاټله- پیله-

شخص:(شخص)اسم- واحد- مذکر- کس- نفر- فرد- (م- عربی)-

شخصی:(شخ-صي)اسم صفت- (۱)دَ يو فرد لاندې نظام حکومت- (۲)ذاتی-

شخصيت:(شخ-صی-يت)اسم- (۱)سړيتوب- (۲)وقار- عزت-

شخلے:(شه-خهٔ-لے)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يو قسم واښهٔ- (۲)په زمکه کښې ښخ هغه لرګے چې دَ پاسه پرې بل لرګے ولاړ وی-

شخنتی:(ش-خن-تي)اسم- واحد- مؤنث- شمشتي- شکرتانے- کاسه کړب- کېشوه- کشب- کشپ-

شخواړ:(شخ-واړ)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو يو قسم لوبه-

شخوده:(شخو-ده)اسم صفت- نوکارې شوے- په نوکارو شوکيدلے-

شخور:(شخور)اسم- (۱)کتکانے- هغه شګه چې خاوره ورسره کلکه شوې وی- (۲)سنګريزه-

شخول:(شخول)اسم- (۱)چغې- آوازونه- (۲)دَ مرغانو چغار- (۳)ښخول- غم- خواشيني- (۵)په نوکارو او مښوکو شوکول-

شخول:(شخول)اسم- دلګيری- اندوه- ملال- خفګان- غم-

شخولے:(شخوه-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوسته- دَ غشو ايښودلو تيلی- (۲)دَ مسافرو ګوړے- (۳)دَ جوارو دَ بوټي پڼهر- (۴)تيرکش- تيردان- جمع شخولی-

شخوند:(شخوند)اسم- واحد- مذکر- دَ خوراک ځيز په غاښونو مېده کونه- وګورئ خدوکے-

شخنه:(شخهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اړوکی بند او غټه- (افغانستان)-

شد:(شد)علامت- هغه علامت چې دَ هغې په وجه يو حرف دوه ځله ادا کيږی لکه تردد- (شد-م- عربی)-

شدان:(ش-دان)اسم- واحد- مذکر- موری- ناوه- دَ أبو لاره-

شداوه:(ش-دا-وه)اسم- واحد- مؤنث- أبري- شړاوه- چوپړی- چغربارة- شلاوه- جوپړ-

شدبد:(شد-بد)اسم- واحد- مؤنث- عقل- هوش- فکر- پوهه- (م- فارسی)-

شدت:(شد-دت)اسم- سختی- تيزی- تندی- (م- فارسی)-

شدمد:(شد-مد)متعلق فعل- زوړ شور- دوم دام- شان وشوکت-

شدياره:(شد-يا-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه زمکه چې دَ کرلو دَ پاره تياره شوې وی- شدياړه- سادين شوې- شاړه- جمع شدياری-

شدياړه:(شد-يا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شدياره- جمع شدياړې-

شديد:(ش-ديد)اسم صفت- سخت- مضبوط- مشکل- (م- عربی)-

شړل:(ش-ړل)اسم صفت- واحد جمع-مذکر- (۱)ناراسته- کاهل- (۲)بې ړبه- ناړامه- (۳)ناوينځلے- خرخرټوکے- (۴)بې دانو وړے- (۵)شاړ- شاړ شپاړ- دَ نرم او مهين ضد- ناتراشلے- - ځيګ- کلک- ستغ- مؤنث شړله-

شړل پړل:(ش-ړل-په-ړل)اسم صفت- ساده باده-

شړلتوب:(ش-ړل-توب)اسم- (۱)ناړامی- بې تهذيبی- (۲)بې حاصلی- (۲)ناهمواره- شړلتيا-

شړلتيا:(ش-ړل-تيا)اسم- وګورئ شړلتوب-

شر:(شر)اسم- واحد- مذکر- (۱)شرارت- (۲)جنګ-

شر:(شر)اسم صوت- په هوا کښې دَ غشي تللو آواز-

شراب:(ش-راب)اسم- واحد- مذکر- بوزه- بړال- نشه- مے- يو نشئيز شربت- دَ انګورو نه ايستے شوې أبهٔ چې دَ نشې دَ پاره استعماليږی- (م- عربی)-

شراب خور:(ش-راب-خور)اسم صفت- شرابی- دَ شرابو څښونکے-

شرابڼه:(ش-را-بهٔ-ڼه)اسم صفت- مؤنث- شرابی ښځه- جمع شرابڼې-

شرابی:(ش-را-بي)اسم صفت- (۱) هغه سړے چې شراب څښی- (۲)دَ شرابو خوند يا رنګ لرونکے-

شرارت:(ش-را-رت)اسم- واحد- مذکر- بدی- شيطانے- شر- ورانے- پېلات- فتنه- (م- عربی)-

شرارتی:(شه-را-ره-تي)اسم صفت- وران کار- شرارت کونکے- پېلاتی-

شرارتيا:(شه-را-رت-يا)اسم- شرارت کونه- وګورئ شرارت-

شرارے:(شهٔ-را-رے)اسم صوت- شرهار- شړار- شرړا- دَ أبو دَ بهيدو او باران شړارے چې ناوې پکښې بهيږی-

شرافت:(شه-زا-فت)اسم- (۱)عزت- (۲) اصالت- (۳)ښهٔ سړيتوب- شائسته- ښهٔ اخلاق- (م- عربی)-

شراکت:(شه-زا-کت)اسم- واحد- مذکر- شريک کېدنه- ګډون- يووالے-

شراکتی:(شه-را-که-تي)اسم- زاحد- مذکر- په کاروبار کښې شريک- شريکوال- برخه خور- حصه دار- ملګرے- انډيوال-

شرام:(شه-رام)اسم- ويره- (افغانستان)-

شربانے:(شر-با-نے)اسم- واحد- مذکر- اشربانے- اشرګرندے- اشر کښې برخه اخستونکے-

شربت:(شر-بت)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوږې أبهٔ- (۲)رشوت- بډې- جمع شربتونه-

شربتي:(شَر-به-تي)اسم صفت- دَ شربت پهٔ شان رنګ يا خوند لرونکے-
شربل:(شَر-بل)مصدر- وګورئ شاربل-
شربلے:(شر-بهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شربلي- مؤنث شربلې- وګورئ شربل-
شربنګ:(شر-بنګ)حاصل مصدر- وګورئ شربل-
شربن:(شر-بن)حاصل مصدر- وګورئ شربل-
شربنه:(شر-بهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شربل-
شربونکے:(شَر-بون-کے)اسمِ فاعل- جمع شربونکي- مؤنث شربونکې- وګورئ شربل-
شرپ:(شَرپ)اسم صوت- شړپ- دَ اُبو اواز-
شرپ:(شَرپ)اسم- واحد- مذکر- يوه وُنه چې دَ سروي پهٔ شان وي او پاڼې يې دَ ارچې پهٔ شان وي-
شرپهار:(شره-په-هار)اسم صوت- شړپار- دَ اُبو مُسلسل آواز-
شرتو شپاړس:(شَر-تو-شپا-ړس)اسم صفت- درهم برهم- تيت پرک- خوارهٔ وارهٔ- تس نس- (افغانستان)-
شرح:(شه-رَح)اسم- بيان- ښوونه- معنیٰ- تفسير- (م- عربي)-
شرر:(شه-رَر)اسم- واحد- مذکر- بځرکے- سپکے- شراره- سپرغی- (م- عربي)-
شرړا:(شر-ړا)اسم صوت- دَ اُبو دَ بهېدو اواز-
شرړول:(شر-ړه-وَل)مصدر- دَ شراړې اواز ايستل-
شرړون:(شر-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ شرړول-
شرړونکے:(شر-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع شرړونکي- مؤنث شرړونکې- وګورئ شرړول-
شرړېدل:(شر-ړې-دَل)مصدر- دَ کمو اُبو دَ بهېدو اواز وتل- شر شړ کول- شړار کول-
شرړېدن:(شر-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ شرړېدل-
شرړېدنګ:(شر-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شرړېدل-
شرړېدنه:(شر-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شرړېدل-
شرړېدونکے:(شَر-ړې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع شرړېدونکي- مؤنث شرړېدونکې- وګورئ شرړېدل-
شرړېدهٔ:(شر-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ شرړېدل-
شرشائی:(شَر-شا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پخواني زمانې دَ وزن پيمانه- (۲)بر خيز-
شرشر:(شر-شر)اسم صوت- لهٔ پورته دَ اُبو راغرځېدولو آواز-
شرشری:(شر-شَ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- شړشوتي- ټوټکه- دَ اتش بازۍ يو شکل-
شرشوبنده:(شر-شو-بن-ده)اسم- واحد- مؤنث- زنځه- هېرې ښځې لرونکې يوه حشره- مزاړپا- جمع شرشوبندې-

شرط:(شرطْ)اسم- واحد- مذکر- بازي- قول او اقرار- وعده- دَ يو کار پهٔ مقابله کښې دَ بل کار کولو وعده- قاعده- دستور- (م- عربي)-
شرطنامه:(شرطْ-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه دستاوېز چې شرطونه پرې ليکلے شوي وي- جمع شرطنامې-
شرطي:(شر-طي)اسم- دَ شرط سره منسوب- وګورئ شرط-
شرع:(شَ-رَع)اسم- شرعه- هغه نېغه لاره چې الله تعالیٰ پرې دَ ټلو حکم ورکړے دے- اسلامي قانون- رښتوني لار- (م- عربي)-
شرعه:(شر-عه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شرع-
شرعي:(شَر-عي)متعلق فعل- دَ شريعت پهٔ حقله- دَ شرعې سره متعلق-
شرغشے:(شَر-غهٔ-شے)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو قسم بوټے چې خور وور وي او تېرهٔ تېرهٔ غشي لري- (۲)دَ شکوڼ غشے- شلغشے- جمع شرغشي-
شرغندويه:(شَر-غَن-دو-يه)اسم- واحد- مؤنث- اُورے- يو قسم شړشم-
شرغه:(شَر-غه)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه اَس چې تندے يا سترګې يې سپينې وي-
شرف:(شَرف/شَ-رَف)اسم- عظمت- لوئي- لوئے والے- بزرګي- خُوبي- ښېګړه- عزت- (م- عربي)-
شرق:(شرق)اسم- واحد- مذکر- نمرخاتهٔ- مشرق- (م- عربي)-
شرک:(شرک)اسم- واحد- مذکر- دَ الله تعالیٰ سره شريک منَنه- شريکونه-
شرک:(شَ-رک)اسم- واحد- مذکر- بړستن- شيرک- تولتکه- نالي- نيالي-
شرک:(شَرک)اسم صوت- (۱)دَ چابک دَ وهلو اواز- (۲)دَ زړهٔ درزا-
شرکت:(شَر-کت)اسم- واحد- مذکر- شراکت- ملګرتيا- پهٔ څهٔ کار کښې برخه خوري- ګډون- (م- عربي)-
شرکه:(شَره-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شرکهار-
شرکهار:(شَره-که-هار)اسم صوت- دَ چابک دَ مسلسل وهلو آواز- شرکه-
شرکی:(شَر-کی)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم ساګ-
شرم:(شَ-رَم)اسم- (۱)حيا- (۲)الزام- تهمت- (۳)خون بها- سپکاوے- ناموس- (م- فارسي)-
شرم بوټے:(شَ-رَم-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- شرم ګياه- يو قسم بوټے- مجالو-
شرمبي:(شرم-بي)اسم- واحد- مؤنث- کونجي- شولګی- دَ شوملو دَ څښلو مُنقش لوښے-
شرم پرده:(شَ-رَم-پر-ده)اسم- شرم او پرده- حيا- عزت- ستر- پرده-
شرمژن:(شَ-رَم-ژَن)اسم صفت- حياناک- شرمناک-
شرمځای:(شَ-رَم-ځایْ)اسم- بد ځایْ- دَ تشو موتيازو اندام-
شرم حيا:(شَ-رَم-ح-يا)اسم مرکب- وګورئ شرم پرده-
شرمسار:(شَ-رَم-سار)اسمِ صفت- شرمنده- پښېمان- نادم- خړ- پيکه- شرمېدلے-
شرمښ:(شَر-مښ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لېوهٔ- ګرګ- سائنسي نوم- ګېنس

لوپس پلی پس (CANIS LUPUS PALLIPES)- (۲)ظالم- حرامخور-
شرمښ بېړۍ:(شر-مښ-بې-ړۍ)اسم- واحد- مؤنث- دَ لېوهٔ سپښته- دَ لېوهٔ بېړۍ-
شرمښکی:(شر-مښ-کی)اسم- واحد- مؤنث- چرمښکی- څرمښکی- پانتو پېسه- کرمېښار-
شرمګ:(شر-مګ)اسم- واحد- مذکر- شرمګ- مړه غونے- یو تریخ بوټے- مړه غونی-
شرمګاه:(شه-رم-ګاه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شرم ځائ-
شرم ګیاه:(ش-رم-ګ-یا)اسم- شرم بوټے- مجالو- شرمنده بوټے-
شرمګیر:(ش-رم-ګیر)اسم صفت- حیاناک- شرمېدونکے-
شرمناک:(ش-رم-ناک)اسم صفت- شرمېدونکے- حیادار- حیاناک-
شرمندوک:(شر-من-دوک)اسم صفت- واحد- مذکر- حیاناک- هغه څوک چې کلک سترګے وی او حیا پکښې نهٔ وی-
شرمنده:(شر-من-ده)اسم صفت- پښېمان- ملامته- شرمېدلے- خیرجه- پیکه- خړ- .(م- فارسی)-
شرمنده بوټے:(شر-من-ده-بوټے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شرم بوټے-
شرمول:(شر-مه-وَل)مصدر- شرمنده کول- (۲)خفه کول- (۳)غول-
شرمولے:(شر-مه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شرمولی- مؤنث شرمولې- وګورئ شرمول-
شرمون:(شر-مه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شرمول-
شرمونګ:(شر-مه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شرمول-
شرمونکے:(شر-مه-وون-کے)اسم فاعل- جمع شرمونکی- مؤنث شرمونکې- وګورئ شرمول-
شرمونه:(شر-مه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شرمول-
شرمونے:(شر-مه-ونے)اسمِ فاعل- جمع شرمونی- مؤنث شرمونې- وګورئ شرمول-
شرمیندګی:(شر-مین-ده-ګی)اسم- شرمینګی- خجالت- سپکتیا- مخ توری- (م- فارسی)-
شرمیندوک:(شر-مین-دوک)اسم- واحد- مذکر- هغه بوټے چې پاڼې ئې دَ لاس ور وړو سره مراوې کیږی پهٔ هندی کښې ورته لاجونتی وائی- نباتاتی نوم میموسه سینسی ټیوا (MIMOSA SENSITIVA) یا ایم پوډیکا (M PUDICA)-
شرمینګی:(شر-مین-ګی)اسم- وګورئ شرمېندګی- (مفغن)-
شرمېدل:(شر-مې-دل)مصدر- نادمه کېدل- شرمنده کېدل- بدنامېدل-
شرمېدلے:(شر-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شرمېدلی- مؤنث شرمېدلې- وګورئ شرمېدل-
شرمېدن:(شر-مې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ شرمېدل-
شرمېدنګ:(شر-مې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شرمېدل-
شرمېدنه:(شر-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شرمېدل-
شرمېدونکے:(شر-مې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شرمېدونکی- مؤنث شرمېدونکې- وګورئ شرمېدل-
شرمېدهٔ:(شر-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شرمېدل-
شرنګ:(شه-رنګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شرمګ-
شرنګ:(شرَنګ)اسم صوت- دَ پانزېب یا دَ ټوپک دَ کولی آواز-
شرنګا:(شرنګ-ګا)اسم صوت- وګورئ شرنګهار-
شرنګاشرنګ:(شرَنګ-ګا-شرَنګ)اسم صوت- (۱)شرنګ شرونګ- (۲)دَ پیکړو او بنګړو وغېره شرنګهار- (۳)شور- شرنګ شرونګ- دَ بنګړو او ګنګرو شنها-
شرنګا شرونګه:(شرَنګ-ګا-شرونګ-ګه)اسم صوت- شرنګا شرونګ- شرنګ شرونګ- شرنګهار- دَ ګونګروګانو او پائیلو اوازونه-
شرنګاوو:(شرنګ-ګا-وو)اسم صوت- شرنګا- شرنګ- کړنګ-
شرنګ شرونګ:(شرَنګ-شرونګ)اسم صوت- ټنګ ټکور- دَ ګډېدونکې لښتې یا ډمې دَ ګونګروګانو شنهار-
شرنګول:(شرَنګ-ګه-وَل)مصدر- دَ پانزېبو وغېره آوازونه راایستل- دَ تورو یا دَ نورو داسې څیزونو دَ جنګېدو اواز چې لهٔ اسپنې یا دَ دې پهٔ شان څیز نه جوړ وی-
شرنګولے:(شرَنګ-ګه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شرنګولی- مؤنث شرنګولې- وګورئ شرنګول-
شرنګون:(شرَنګ-ګه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شرنګول-
شرنګونکے:(شرَنګ-ګه-وون-کے)اسم فاعل- جمع شرنګونکی- مؤنث شرنګونکې- وګورئ شرنګول-
شرنګونګ:(شرَنګ-ګه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شرنګول-
شرنګونه:(شرَنګ-ګه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شرنګول-
شرنګهار:(شرَنګ-ګا-هار)اسم صوت- دَ ګونګروګانو آواز- دَ جرس آواز- شرنګا- شرنګا-
شرنګېدل:(شرَنګ-ګې-دل)حاصلِ مصدر- دَ جرس یا دَ پانزېبو آواز راوتل- شرنګېدل- کړنګېدل-
شرنګېدلے:(شرَنګ-ګې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شرنګېدلی- مؤنث شرنګېدلې- وګورئ شرنګېدل-
شرنګېدن:(شرَنګ-ګې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ شرنګېدل-
شرنګېدنګ:(شرَنګ-ګې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شرنګېدل-
شرنګېدونکے:(شرَنګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شرنګېدونکی- مؤنث شرنګېدونکې- وګورئ شرنګېدل-
شرنګېدنه:(شرَنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شرنګېدل-
شرنګېدهٔ:(شرَنګ-ګې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شرنګېدل-
شرنګے:(شرنګ-ګے)اسم صوت- دَ جرس اواز- دَ شرنګ اواز-

شرو:(شرو)اسم- دَ غرهٔ خاوره چې دَ صابون په طور استعمالیږی-

شروپ:(ش-روپ)اسم- شراب- مے- (عامیانه)-

شروت:(شروت)اسم- غنجال- ترشه میوه-

شروع:(ش-روع)اسم- آغاز- ابتدا- اول- (م- عربی- فارسی)-

شرمار:(شه-ره-مار)اسم صوت- (۱)شرار- دَ بهېدونکو اُبو آواز- بړمار- (۲)شغار- دَ خول یا سیلی آواز- په هوا کښې دَ تېز تېرېدونکی څیز آواز-

شری:(شه-ری)اسم صفت- ورانکارے- چې مروخت جنګ ته تیار وی- جمع شریان-

شریان:(شر-یان)اسم- جمع- مذکر- هغه رګ چې لهٔ زړهٔ نه دَ بدن نورو حصو ته وینه رسوی- (م- عربی)-

شریپه:(ش-ری-په)اسم- واحد- مؤنث- هغه دېوال چې دَ چت دَ چڃې دَ پاسه ختلے وی-

شریر:(ش-ریر)اسم صفت- شرارت کونکے- شر خوښونکے- (م- عربی)-

شریعت:(ش-ری-عت)اسم- واحد- مذکر- شرع- دَ قرآن او سُنت اسلامی دستور او قانون- (م- عربی)-

شریف:(ش-ریف)اسم صفت- شرافت لرونکے- ایماندار- نېک- ساهُو (م- عربی)-

شریفه:(ش-ری-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱) بلې- (۲)سرماتے- سربې- چتی- (۳)یوه میوه چې دننه سره وی-

شریک:(ش-ریک)اسم صفت- (۱)په څهٔ کار کښې شریک- (۲)کرونده ګر- (۳)حصه دار- (۴)برخه خور چې زمکه څوک خوری- (۵)ګډ- یوځایٔ- شریکوال- انډیوال-

شریک خور:(ش-ریک-خور)اسم صفت- شراکتی- برخه ور- برخه خور-

شریکول:(ش-ری-که-ول)مصدر- ملګرے کول- ګډول- یو ځایٔ کول-

شریکون:(ش-ری-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ شریکول-

شریکونکے:(ش-ری-که-ون-کے)اسم فاعل- جمع شریکونکی- مؤنث شریکونکې- وګورئ شریکول-

شریکونه:(ش-ری-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شریکول-

شریکه:(ش-ری-که)اسم صفت- واحد- مؤنث- په ګډه- په څوکسی- دَ شراکت- چې دَ څو کسانو پکښې برخه وی- دَ وېشل شوې ضد- دَ تقسیم ضد-

شریکی:(ش-ری-کی)اسم- (۱)برخه- حصه- (۲)شراکت- په برخه زمکه خوړل- ګروندګری-

شریکی کول:(ش-ری-کی-کول)مصدر- شراکت کول- محبت کول- یوځایٔ کېدل-

شریکېدل:(ش-ری-کې-دل)مصدر- ملګرے کېدل- یو ځایٔ کېدل-

شریکېدن:(ش-ری-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شریکېدل-

شریکېدنګ:(ش-ری-کی-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شریکېدل-

شریکېدونکے:(ش-ری-کې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شریکېدونکی- مؤنث شریکېدونکې- وګورئ شریکېدل-

شریکېدنه:(ش-ری-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شریکېدل-

شریکېدهٔ:(ش-ری-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شریکېدل-

شریکے:(ش-ری-کے)اسم صفت- شریک- دَ شریکې- دَ شراکت په ګډه-

شرے:(شهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ناروغی- دَ ماشومانو هغه مرض چې په ټول وجود ئې نری نری سرې دانې راوخیژی- خسره-

شړ:(شړ)اسم صفت- (۱)شاړ- غېرآباده- بنجره- (۲)بې حاصله- بې فائدې- بې توښې- (۳)یو قسم نل چې مینځ ئې ړک وی-

شړ:(شړ)اسم صوت- شړار- شړارے- دَ اُبو دَ مستی آواز- دَ اُبو دَ بهېدو آواز-

شړا:(شه-ړا)اسم صوت- دَ اُبو دَ بهېدو آواز- شړار-

شړار:(شه-ړار)اسم صوت- وګورئ شړا-

شړارے:(شه-ړا-رے)اسم صوت- وګورئ شړا-

شړېدل:(شه-ړې-دل)مصدر- بنجرېدل- بې فائدې کېدل-

شړېدلے:(شه-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړېدلی- مؤنث شړېدلې- وګورئ شړېدل-

شړېدن:(شه-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شړېدل-

شړېدنګ:(شه-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شړېدل-

شړېدونکے:(شه-ړې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شړېدونکی- مؤنث شړېدونکې- وګورئ شړېدل-

شړېدنه:(شه-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شړېدل-

شړېدهٔ:(شه-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شړېدل-

شړپ:(شړپ)اسم صوت- دَ اُبو توبولو آواز- شړپا- شړمار- شړپار-

شړپا:(شړه-پا)اسم صوت- وګورئ شړپ-

شړپار:(شړه-پار)اسم صوت- وګورئ شړپ-

شړپ شړپ:(شړپ-شړپ)اسم صوت- (۱)چړپ چړپ- دَ سپی دَ خوراک یا څښاک آواز- (۲)متعلق فعل- په بدتمیزی سره خوړنه-

شړپ شړوپ:(شړپ-شړوپ)اسم صوت- دَ اُبو دَ خوځولو یا په چپو کښې دَ حرکت آواز-

شړپول:(شړه-په-ول)مصدر- اُبو ته حرکت ورکول-

شړپولے:(شړه-په-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړپولی- مؤنث شړپولې- وګورئ شړپول-

شړپون:(شړه-په-ون)حاصل مصدر- وګورئ شړپول-

شړپونګ:(شړه-په-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ شړپول-

شړپونکے:(شړه-په-ون-کے)اسم فاعل- جمع شړپونکی- مؤنث شړپونکې-

وګورئ شړپول-

شړپونه:(شړه-په-وه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړپول-

شړپه:(شړه-په)اسم صوت- دَ اُبو دَ حرکت اواز- دَ پردی مال پهٔ بېدرادۍ سره خرڅ کونه-

شړپهار:(شړه-په-هار)اسم صوت- وګورئ شړپ-

شړپېدل:(شړه-پې-دَل)مصدر- دَ اُبو دَ حرکت اَواز وتل- پهٔ اُبو کښې چپې راتلل-

شړپېدلے:(شړه-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړپېدلی- مؤنث شړپېدلې- وګورئ شړپېدل-

شړپېدن:(شړه-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شړپېدل-

شړپېدنګ:(شړه-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شړپېدل-

شړپېدونکے:(شړه-پې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع شړپېدونکی- مؤنث شړپېدونکې- وګورئ شړپېدل-

شړپېدنه:(شړه-پې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړپېدل-

شړپېدهٔ:(شړه-پې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شړپېدل-

شړت:(شړت)اسم صوت- (۱)پهٔ مائع څیز کښې دَ بل مائع څیز دَ اچولو نه پس راوتونکے آواز- (۲- اسم)ابلن څیز ته حرکت ورکونه-

شړت:(شړت)اسم صفت- مړاوے-

شړتول:(شړهٔ-ته-وَل)مصدر- (۱)اُبلن څیز ته حرکت ورکول- لهٔ اُبو دَ حرکت پهٔ وجه اَواز وتل- (۲)سستول- (۳)بېر بې قاعدې کول- (۴)خرابول-

شړتوب:(شړ-توب)اسم- شاړوالے- شاړېدنه-

شړتولے:(شړهٔ-ته-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړتولی- مؤنث شړتولې- وګورئ شړتول-

شړتون:(شړهٔ-ته-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شړتول-

شړتونګ:(شړه-ته-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شړتول-

شړتونکے:(شړهٔ-ته-وون-کے)اسم فاعل- جمع شړتونکی- مؤنث شړتونکې- وګورئ شړتول-

شړتونه:(شړهٔ-ته-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړتول-

شړتېدل:(شړهٔ-تې-دَل)مصدر- (۱)شړپېدل- (۲)دَ حرکت پهٔ وجه لهٔ اُبو اَواز وتل- (۲)خرابېدل-

شړتېدلے:(شړهٔ-تې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړتېدلی- مؤنث شړتېدلې- وګورئ شړتېدل-

شړتېدن:(شړه-تې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شړتېدل-

شړتېدنګ:(شړهٔ-تې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شړتېدل-

شړتېدونکے:(شړهٔ-تې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع شړتېدونکی- مؤنث شړتېدونکې- وګورئ شړتېدل-

شړتېدنه:(شړهٔ-تې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړتېدل-

شړتېدهٔ:(شړهٔ-تې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شړتېدل-

شړشپه:(شړ-شه-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ډرکه- تنکسه- (۲)دَ طوفان یا جنګ ورستی شپه- جمع شړشپې- (افغانستان)-

شړشم:(شړ-شم)اسم- یو قسم تخم چې تېل ترې وځی او پاڼې ئې دَ ساګ پهٔ دود پخولے شی- نباتاتی نوم سناپس ډائې کوټوما(SINAPIS DICHOTOMA)-

شړط:(شړط)اسم- دَ شرط عامیانه تلفظ- وګورئ شرط-

شړطی:(شړ-طی)اسم- (۱)شرطیه- لازمی- دَ شرط سره متعلق- خامخا- (۲)شړطی کونه- دَ وینځلو جامو پهٔ اُبو کښې دَ پاکولو دَ پاره وهنه-

شړق:(شړق)اسم صوت- (۱)دَ څهٔ څیز دَ راغرځېدو یا دَ ماتېدو آواز- (۲)پهٔ چابک یا کروړه دَ وهلو آواز- (۳)دَ ګوزار آواز- شړک- (۴)دَ باران چړق- (۵)ناګهانی آفت-

شړق شپه:(شړق-شې-به)اسم- واحد- مؤنث- تېز باران-

شړقول:(شړه-قه-وَل)مصدر (۱)شړکول- وهل ټکول- دَ مائع څیز نه دَ حرکت پهٔ زور آواز ایستل- (۲)خوځول- پهٔ ځپېړو وهل-

شړقولے:(شړه-قه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړقولی- مؤنث شړقولې- وګورئ شړقول-

شړقون:(شړهٔ-قه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شړقول-

شړقونګ:(شړه-قه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شړقول-

شړقونکے:(شړه-قه-وون-کے)اسم فاعل- جمع شړقونکی- مؤنث شړقونکې- وګورئ شړقول-

شړقونه:(شړه-قه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړقول-

شړقېدل:(شړه-قې-دَل)مصدر- وهلے ټکولے کېدل- خوزېدل- پهٔ ځپېړو وهلے کېدل-

شړقېدلے:(شړه-قې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړقېدلی- مؤنث شړقېدلې- وګورئ شړقېدل-

شړقېدن:(شړه-قې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شړقېدل-

شړقېدنګ:(شړه-قې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شړقېدل-

شړقېدونکے:(شړه-قې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع شړقېدونکی- مؤنث شړقېدونکې- وګورئ شړقېدل-

شړقېدنه:(شړه-قې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړقېدل-

شړقېدهٔ:(شړه-قې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شړقېدل-

شړک:(شړک)اسم صوت- وګورئ شړق-

شړکول:(شړه-که-وَل)مصدر وګورئ شړقول-

شړکولے:(شړه-که-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شړکولی- مؤنث شړکولې- وګورئ شړکول-

شړکونکے:(شړه-که-وون-کے)اسم فاعل- جمع شړکونکی- مؤنث شړکونکې-

ئ-(ځی-رَل)، ې(هې-ره-وَل)، ی(پیا-لی)، ے(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

وُګورئ شړکول-

شړکونه:(شړه-که-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړکول-

شړکهار:(شړه-که-هار)اسمِ صوت- دَ وهلو آواز-

شړکېدل:(شړه-کې-دَل)مصدر- وُګورئ شړقېدل-

شړکېدلے:(شړه-کې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړکېدلی- مؤنث شړکېدلې- وُګورئ شړکېدل-

شړکېدنه:(شړه-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړکېدل-

شړکېدونکے:(شړه-کې-دوَن-کے)اسمِ فاعل- جمع شړکېدونکی- مؤنث شړکېدونکې- وُګورئ شړکېدل-

شړکېدهٔ:(شړه-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وُګورئ شړکېدل-

شړل:(شه-ړَل)مصدر- (۱)لهٔ کوره یا لهٔ خانه لرې کول- اخوا کول- (۲)رټل-

شړلے:(شه-ړهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړلی -مؤنث شړلې- وُګورئ شړل-

شړم:(شړم)اسمِ صفت- سُست- کاهل- ناراسته-

شړمبې:(شړم-بې)اسم- شوملې- شلومبې- شړومبې- تروې- شنه پۍ-

شړمتوب:(شړم-توب)اسم- شړموالے- کاهلی- سُستی-

شړموالے:(شړم-وا-لے)اسم- وُګورئ شړمتوب-

شړمول:(شړه-مه-وَل)مصدر- کاهلول- سُستول- سُست جوړول-

شړمون:(شړه-مه-وَن)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړمول-

شړمونګ:(شړه-مه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړمول-

شړمونکے:(شړه-مه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړمونکی- مؤنث شړمونکې- وُګورئ شړمول-

شړمونه:(شړه-مه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړمول-

شړمېدل:(شړه-مې-دَل)مصدر- کاهلېدل- سُستېدل- ناراسته کېدل-

شړمېدلے:(شړه-مې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړمېدلی- مؤنث شړمېدلې- وُګورئ شړمېدل-

شړمېدن:(شړه-مې-دَن)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړمېدل-

شړمېدنګ:(شړه-مې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړمېدل-

شړمېدونکے:(شړه-مې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړمېدونکی- مؤنث شړمېدونکې- وُګورئ شړمېدل-

شړمېدنه:(شړه-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړمېدل-

شړمېدهٔ:(شړه-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وُګورئ شړمېدل-

شړن:(شه-ړَن)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړل-

شړنګ:(شړنګ)اسمِ صوت- وُګورئ شرنګ-

شړنګ شړونګ:(شړنګ-شړونګ)اسمِ صوت- شرنګ شرونګ- دَ شنها آواز- دَ شرنګا آواز-

شړنګول:(شړنګ-که-وَل)مصدر- شرنګول- دَ څهٔ څيز نه دَ شرنګا آواز ایستل- شرنګ ورکول-

شړنګولے:(شړنګ-که-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړنګولی- مؤنث شړنګولې- وُګورئ شړنګول-

شړنګون:(شړنګ-که-وَن)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړنګول-

شړنګونګ:(شړنګ-که-وَنګ)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړنګول-

شړنګونکے:(شړنګ-که-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړنګونکی- مؤنث شړنګونکې- وُګورئ شړنګول-

شړنګونه:(شړنګ-که-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړنګول-

شړنګهر:(شړنګ-که-هر)اسمِ صوت- شړنګار- شرنګا- شرنګ شرونګ-

شړنګېدل:(شړنګ-کې-دَل)مصدر- شرنګېدل- شرنګا کول- شرنګ شرونګ کول-

شړنګېدلے:(شړنګ-کې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړنګېدلی- مؤنث شړنګېدلې- وُګورئ شړنګېدل-

شړنګېدن:(شړنګ-کې-دَن)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړنګېدل-

شړنګېدنګ:(شړنګ-کې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړنګېدل-

شړنګېدونکے:(شړنګ-کې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړنګېدونکی- مؤنث شړنګېدونکې- وُګورئ شړنګېدل-

شړنګېدنه:(شړنګ-کې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړنګېدل-

شړنګېدهٔ:(شړنګ-کې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وُګورئ شړنګېدل-

شړنکے:(شړنګ-کے)اسم- واحد- مذکر- کنګوسه- نرے آواز- جمع شړنګی-

شړنه:(شه-ړهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ وُګورئ شړل-

شړوالے:(شړ-وا-لے)اسم- شاړوالے- شاړتوب- بنجرېدنه- بې فائدې کېدنه- بې ښېګړې کېدنه-

شړوپ:(شړوپ)اسمِ صوت- غړپ- غړوپ- دَ څهٔ څيز دَ ځښلو یا چوپلو آواز- دَ څهٔ څيز پهٔ اُبو کښې دَ غرځېدو آواز-

شړوت:(شړوت)اسمِ صوت- (۱)دَ مائع څيز دَ ځښلو آواز- (۲)دَ مرز دَ الوتلو پهٔ وخت آواز- (۳)دَ مائع څيز نه زور سره دَ راوتلو آواز-

شړوخ:(شړوخ)اسم- واحد- مذکر- ځرمن- دَ انسانی بدن پوټکے- شولتک- ځمرکه- ځمره- خور-

شړول:(ش-ړه-وَل)مصدر- شاړول- بې حاصله کول- بنجرول- بې فائدې کول- ضائع کول-

شړولے:(ش-ړه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړولی- مؤنث شړولې- وُګورئ شړول-

شړون:(ش-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وُګورئ شړول-

شړون:(شه-ړون)اسم- وُګورئ شړل-

شړونکے:(ش-ړون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړونکی- مؤنث شړونکې- وُګورئ شړل-

شړونکے:(ش-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړونکی- مؤنث شړونکې-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ږو-بې-دهٔ)

وګورئ شړول-

شړونګ پړونګ:(شړونګ-پړونګ)اسم صفت- سُست پُست- کامل-

شړونکے:(شړونګ-کے)اسم- واحد- مذکر- کمې او په مزه روانې اُبهٔ-

شړونه:(شه-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړول-

شړه:(شه-ړه)اسم صفت- شاړه- بنجره زمکه-

شړه موړه:(شه-ړه-مو-ړه)اسم- اسم- واحد- مؤنث- سرماتې- (افغانستان)-

شړهار:(شه-ړه-هار)اسم صوت- دَ اُبو دَ شړ شړ آواز-

شړهېدل:(شړ-هې-دل)مصدر- مړاوے کېدل-

شړهېدلے:(شړ-هې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړهېدلی- مؤنث شړهېدلې- وګورئ شړهېدل-

شړهېدن:(شړ-هې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ شړهېدل-

شړهېدونکے:(شړ-هې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړهېدونکی- مؤنث شړهېدونکې- وګورئ شړهېدل-

شړینکے:(شه-ړین-کے)اسم تصغیر- وړه شړی- شړینګی-

شړینګی:(شه-ړینګ-کی)اسم تصغیر- وګورئ شړینکے-

شړېدل:(شه-ړې-دل)مصدر- بنجر کېدل- شاړېدل- بې فائدې کېدل- بې حاصله کېدل-

شړېدلے:(شه-ړې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شړېدلی- مؤنث شړېدلې- وګورئ شړېدل-

شړېدن:(شه-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ شړېدل-

شړېدنګ:(شه-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شړېدل-

شړېدونکے:(شه-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع شړېدونکی- مؤنث شړېدونکې- وګورئ شړېدل-

شړېدنه:(شه-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شړېدل-

شړېدهٔ:(شه-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شړېدل-

شړېور:(شه-ړې-ور)اسم- شړی پسرونکے- ساده-

شړی:(شه-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ وړی یا بزو دَ وېښتو نه جوړ شوے څادر- کمبل-

شړی بوټے:(شه-ړی-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ خاکشیر دَ خاندان یو بوټے چې په فصل کښې کیږی-

شست:(شست)اسم- واحد- مذکر- په کته کښې لګېدلې وړه آئینه-

شستے:(شس-تے)اسم- یو ښائسته ګل- ګلِ داؤدی- نباتاتی نوم کرس فیو تیمم (CRYSFUTHEMUM)-

ششتره:(شش-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- پیشترے- اخنګ- یو قسم ساګ- جمع ششترې- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ اخنګ-

ششدر:(شش-در)اسم- حېران- (م- فارسی)-

شش شش:(شش-شش)اسم صوت- شیشکارنه- وګورئ شیشکارل-

ششک:(ش-شک)اسم- واحد- مذکر- تاخ- طاق- درے- جمع ششکونه-

ششکارل:(شش-کا-رل)مصدر- کیشکارل- توکارل- سپے دَ حملې دَ پاره کومارل-

ششکارلے:(شش-کا-رهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع ششکارلی- مؤنث ششکارلې- وګورئ ششکارل-

ششکارن:(شش-کا-رن)حاصلِ مصدر- وګورئ ششکارل-

ششکارنه:(شش-کا-رهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ششکارل-

ششکارونکے:(شش-کا-رون-کے)اسمِ فاعل- جمع ششکارونکی- مؤنث ششکارونکې- وګورئ ششکارل-

ششکے:(شش-کے)اسم- خیژکے- خیزکے- ریګاشه- دَ شکوڼ یو قسم- جمع ششکی-

ششنا:(شش-نا)اسم صوت- دَ اُس دَ هېڼېدو اُواز-

ششنل:(شش-نل)مصدر- دَ اُس هېڼېدل- ششنېدل- ششڼېدل- دَ اُس دَ مستی په وجه اُواز وېستل-

ششنېدل:(شش-نې-دل)مصدر- وګورئ شنېدل-

ششنېدن:(شش-نې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ شنېدل-

ششنېدنګ:(شش-نې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شنېدل-

ششنېدونکے:(شش-نې-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع ششنېدونکی- مؤنث ششنېدونکې- وګورئ شنېدل-

ششنېدنه:(شش-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شنېدل-

ششنېدهٔ:(شش-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ شنېدل-

ششنے:(شش-نے)اسم صوت- دَ اُس دَ مستی نه هېڼېدنه-

شش وپنج:(شه-شو-پنج)اسم- حېرانی- (م- فارسی)-

ششه:(ش-شه)اسم- واحد- مؤنث- یو ازغی لرونکے بوټے-

شطرنج:(شط-رنج)اسم- دَ یوې لوبې نامه- (م- عربی)-

شطرنجی:(شط-رن-جی)اسم- واحد- مؤنث- یوه لویه ښائسته دری-

شعار:(شه-عار)اسم- عادت- طور- طریقه- چال- لاره- (م- عربی)-

شعاع:(ش-عاع)اسم- دَ نمر څړیکه- (م- عربی)-

شعبان:(شع-بان)اسم- دَ قمری کال اتمه میاشت- (م- عربی)-

شعبده:(شع-به-ده)اسم- جادو منتر- دوکه بازی- تماشه- مکر- چال- فن- (م- فارسی)-

شعبده باز:(شع-به-ده-باز)اسم صفت- مداری- چالاک- (م- فارسی)-

شعبده بازی:(شع-به-ده-با-زی)اسم- دَ مداری لوبه- چالاکی- دوکه- (م- فارسی)-

شعبه:(شع-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شاخ- حصه- ټوکړه- (۲)محکمه- (م- عربی)-

شعر:(شعر/ش-عر)اسم- واحد- مذکر- هغه منظوم کلام چې په اراده ووئېلے شی او قافیه لری- بیت-

شعله:(شَع-له)اسم- واحد- مؤنث- شغله- دَ أور لمبه- (م- عربی)-

شعور:(شُ-عُور)اسم- عقل- پوهه- فهم- تمیز- سوچ- (م- عربی)-

شغ:(شغ)اسمِ صوت- (۱)دَ مارغهٔ دَ الوتو پهٔ وخت دَ وزرو آواز- دَ تېزې سیلی اواز- دَ نوو کپړو آواز- (۲)بېړه- تلوار- تندی-

شغا:(ش-غا)اسم صوت- شغار- دَ شغ شغ مسلسل آواز-

شغار:(شه-غار)اسم صوت- وګورئ شغا-

شغاشغ:(شَ-غا-شَغ)اسم صوت- دَ ټوپک دَ ګولو آواز-

شغال:(شَ-غال)اسم- واحد- مذکر- ګیدړ- چغال-

شغالاتې:(شَ-غا-لا-تې)اسم- دَ ماشومانو یوه لوبه- شلغاتی- ایری بیری-

شغالی:(شَ-غا-لی)اسم- بې عزتی- بې غېرتی-

شغالے:(ش-غا-لے)اسم صفت- کم اصل- کمینه- رذیل- جمع شغالی-

شغالے:(شَ-غا-لے)اسم- (۱)دَ اوبښ یو قسم- (۲)یو قسم ټوپک او دَ هغې کارتوس- جمع شغالی-

شغب:(شَ-غَب)اسم- فریاد- شور- فساد- (م- عربی)-

شغرب:(شغ-رب)اسم- (۱)مشرق- نمرخاتهٔ- ختیځ- (۲)لرې ځایَ-

شغرغ:(شَغ-رَغ)اسمِ صفت- شریر- شېطان- فسادی- وران-

شغف:(شَ-غَف)اسم- محبت- شوق- اشتیاق- (م- عربی)-

شغکه:(شَ-غهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ازغے- لښه- جمع شغکې-

شغل:(شُ-غُل)اسم- مصروفیت- کار- (م- عربی)-

شغلبه:(شَغ-له-به)اسم- واحد- مؤنث- غلبله- شور- کوکاره-

شغله:(شُغ-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شعله-

شغول:(شَ-غول)اسم- واحد- مؤنث- خرخره- کراره- هغه آله چې دَ اَس دَ کرولو دَ پاره پکارولے شی-

شغول:(شهٔ-غه-وَل)مصدر- غرول- پهٔ تېزه کوزارول- لهٔ ځهٔ ځیزه دَ شغ شغ آواز ایستل-

شغولے:(شهٔ-غه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شغولی- مؤنث شغولې- وګورئ شغول-

شغون:(شهٔ-غه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شغول-

شغونکے:(شهٔ-غه-ون-کے)اسم فاعل- جمع شغونکی- مؤنث شغونکې- وګورئ شغول-

شغونګ:(شهٔ-غه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شغول-

شغونه:(شهٔ-غه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شغول-

شغېدل:(شهٔ-غې-دل)مصدر لازم- لهٔ یو ځیزه دَ شغ شغ آواز وېستلے کېدل- شغارے کول- پهٔ تېزه راګوزارېدل- زرغوټه کېدل-

شغېدلے:(شهٔ-غې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شغېدلی- مؤنث شغېدلې- وګورئ شغېدل-

شغېدن:(شهٔ-غې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شغېدل-

شغېدنګ:(شهٔ-غې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شغېدل-

شغېدونکے:(شهٔ-غې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع شغېدونکی- مؤنث شغېدونکې- وګورئ شغېدل-

شغېدهٔ:(شهٔ-غې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ شغېدل-

شغهار:(شهٔ-غه-هار)اسم صوت- دَ شغ شغ آواز-

شفا:(شه-فا)اسم- رغېدنه- روغېدنه- صحت- تندرستی- (م- عربی)-

شفاخانه:(شه-فا-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ علاج ځایَ- مسپتال- روغتون-

شفاعت:(ش-فا-عَت)اسم- شفارش- دَ ګناهونو دَ معافی شفارش چې دَ رسول کریم علیه السّلام سره مخصوص دے- (م- عربی)-

شفاف:(ش-فاف)اسم صفت- ډېر زیات سپین- ډېر صفا- وړون- ځلېدونکے- هغه ځیز چې رڼا ترې پورې راپورې ووځی-

شفائی:(ش-فا-ئی)اسم- جوړېدنه- دَ شفا سره متعلق- (م- عربی)-

شفتالو:(شف-تا-لُو)اسم- واحد- مذکر- یوه وَنه او دَ هغې مېوه- شلتالو- نباتاتی نوم پرونس ډومیسټیکا (PRUNUS DOMESTICA)-

شفتل:(شُف-تَل)اسم- شوتل- یو قسم واښهٔ چې څاروو ته ورکولے شی- نباتاتی نوم ټرائی فولیئم رپنز (TRIFOLIAM REPENS)-

شفق:(شه-فَق)اسم- واحد- مذکر- دَ سحر او نماښام پهٔ وخت کښې پهٔ افق ښکاره کېدونکې سُرخی- (م- عربی)-

شفقت:(شَف-قَت)اسم- مینه- محبت- مهربانی- رحم- (م- عربی)-

شفعه:(ش-فه)اسم- واحد- مؤنث- شُفعه- دَ اسلامی قانون مطابق هغه حق چې دَ کور یا زمکې پهٔ خرڅولو دَ ګوانډ یا شرکت پهٔ وجه حاصلېږی- (م- عربی)-

شفیع:(شه-فیع)اسم صفت- شفاعت کونکے- (م- عربی)-

شفیق:(شه-فیق)اسم صفت- مهربانه- مهربانی کونکے- همدرد- رحمدل- (م- عربی)-

شق:(شَق)اسم- شلېدنه- ماتېدنه- چودنه- (م- عربی)-

شقی:(شه-قی)اسم صفت- بدبخت- بدنصیب- (م- عربی)-

شک:(شَک)اسم- واحد- مذکر- ګومان- شبه- (م- عربی)-

شکارل:(شکا-رل)مصدر- سپے ددکارل- رغبت ورکول- تحریک ورکول- سپی ته دَ حملې کولو دَ پاره شش شش کول- ششکارل- کیشکارل-

شکارلے:(شکا-رهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع شکارلی- مؤنث شکارلې- وګورئ شکارل-

شکارن:(شکا-رن)حاصلِ مصدر- وګورئ شکارل-

شکارنګ:(شکا-رنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ شکارل-

شکارنه:(شکا-رهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شکارل-

شکارونکے:(شکا-رُون-کے)اسم فاعل- جمع شکارونکی- مؤنث شکارونکې- وګورئ شکارل-

شکال:(شکال)اسم- (۱)دَ څاروی پښو ته پرے اچونه- (۲)چغال- شغال- ګیدړ-

"زبر"(غَ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شِل)، "پېښ"(نُو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکونې)، "ه"(زَ-ړه)، "ۀ"(پو-ښې-دهٔ)

شکاڼ:(شکاڼ)اسم- واحد- مذکر- شکوڼ- یو ځناور چې په بدن ئې تېرهٔ تېرهٔ غشي وی- (ش- انګریزی- شېکل)-

شکاؤتاتی:(شکاؤ-تا-تی)اسم- واحد- مؤنث- شمشتی- شکرتانے- کومی- کشب- شکاؤتی- کاسه ګرب- کیشپ- کېشوه- کېشو- دَ اوږدې غړانګے لرونکے یو ابی ځناور-

شکاؤتی:(ش-کاؤ-تی)اسم- وګورئ شکاؤتاتی-

شکایت:(ش-کا-یت)اسم- واحد- مذکر- ګیله- شکوه- جمع شکایتونه- (م- عربی)-

شک دار:(شک-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- شک مَن- ګومانی- جمع شک داران-

شکر:(شُ-کُر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ څهٔ نېکۍ پهٔ بدل کښې دَ خپل محسن دَ احسان یادونه- (۲)شکریه- مهربانی- جمع شکرونه-

شکر:(شَ-کَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)چینی- (۲)خواږهٔ- (ش- فارسی)-

شکرانه:(شُک-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شکر ګزاری- (۲)منښته ورکونه- نذرانه- (۳)خېرات- (۴)دَ یو کار مزدوری- جمع شکرانې-

شکرباز:(شَ-کَر-باز)اسم صفت- (۱)شکرې وروونکے- (۲)خوږ- خوږه- (ش- فارسی)-

شکربتۍ:(شَ-کَر-به-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- بتۍ- اُربشې چې پهٔ بغرې کښې زږې کړے شی- بیا ئې لکه دَ شولو وټکوی او دَ وریژو پهٔ شان ئې پخوی- اوګره ترې هم پخیری-

شکرپاره:(شَ-کَر-پا-ره)اسم- مؤنث- یو قسم خواږهٔ چې دَ مېدې او چینو نه جوړولے شی او پهٔ غوړو کښې سرهٔ کولے شی-

شکرتری:(شَ-کَر-ته-ری)اسم- تری- سپین چینی- سپین تری- سپینه چینی- دېسی تری- بوره-

شکرخند:(شَ-کَر-خند)اسم- واحد- مؤنث- دَ ناز خندا- خوږه خندا-

شک رک:(شَک-رَک)اسم- (۱)شک ورکول- خیال وګومان- بیخی درک نهٔ لګېدنه- (۲)شُد بُد- (۳)صفت- خبردار- اګاه-

شکرکه:(شَک-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- لوئې پاڼې لرونکې یوه غرنېزه وُنه- جمع شکرکې-

شکررنجی:(شَ-کَر-رن-جی)اسم- مؤنث- خفګان- مغه خفګان چې کینه پښې نهٔ پېدا کیری-

شکرګنے:(شَ-کَر-ګه-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګنے- (۲)دَ مچو ږومبکے- دَ شاتو دَ مچیو کور- ګبین- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ ګنے-

شکرګوزار:(شُ-کُر-ګو-زار)اسم صفت- نیکی منونکے- احسان منونکے- وګورئ احسان من-

شکرلب:(شَ-کَر-لَب)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ خوږو شونډو خاوند- محبوب- معشوق- (م- فارسی)-

شکرتانے:(شَ-کَر-تا-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شکاؤتاتی-

شکره:(شَک-ره)اسم صفت- واحد- مذکر- پهٔ عقل تېز او چالاک ماشوم-

شکره:(شه-کهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ګړې چوره- مېده ګوړه- (۲)تری- خړرنګې چینی- (۳)یو خیرونکے مارغهٔ- اشکره- (۴)دَ یو ګل نامه-

شکریه:(شُک-ری-یه)اسم- واحد- مؤنث- شکر- تشکر- مهربانی- دَ چا دَ مهربانۍ او احسان شکر اداکونه- جمع شکریې-

شکری:(شکه-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لهٔ مېزری جوړه ټوکری-

شکرے:(شک-رے)اسم- واحد- مذکر- شیکرے- یو ښکار کونکے مارغهٔ- جمع شکری-

شکرے:(شکه-رے)اسم- واحد- مذکر- لهٔ مېزری جوړ شکور- جمع شکری-

شکست:(ش-کَست)اسم- واحد- مذکر- تښتېدنه- مېدان پرېښودنه- ماتې- بېلات- جمع شکستونه- (م- فارسی)-

شکسته:(ش-کس-ته)اسم صفت- (۱)شلېدلے- (۲)مات- (۳)کمزورے- (م- فارسی)-

شکشکه:(شُک-شه-که)اسم- واحد- مؤنث- جکجکانے- دَ ماشومانو دَ بېړیو لوبهٔ- (افغانستان)-

شکل:(شهٔ-کل)اسم- واحد- مذکر- (۱)مخ- صورت- څهره- (۲)وندر- پلواکه- غړوندے-

شکلی:(شک-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شمله- (۲)دَ دستار ځنډے-

شکم:(ش-کَم)اسم- واحد- مذکر- کېډه- خېټه- نس- تاړ- (م- فارسی)-

شکمپاره:(ش-کم-پا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یوه مشهوره دوائی- سپغول- (۲)دَ دوو سپرغو فاصله- جمع شکمپارې- (افغانستان)-

شکمن:(شک-مَن)اسم صفت- ګومان کونکے- ګومانی- شکمند- شکی- شک کونکے- (م- فارسی)-

شکمند:(شک-مَند)اسم صفت- وګورئ شکمن-

شکن:(ش-کَن)اسم صفت- ماتونکے- تباه کونکے- پهٔ مرکباتو کښې دَ لاحقې پهٔ توګه استعمالیږی- لکه بت شکن-

شکنبه:(شکَن-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ بېړیو یوه لوبه- خند- جمع شکنبې-

شکنجه:(شکَن-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سکنجه- (۲)پانه- (۳)لومه- پنجره-

شکنجی:(شکَن-جی)اسم- واحد- مؤنث- یوه دانه چې عام طور سره پهٔ ترخ کښې یا پهٔ پتون راخیژی-

شکندړ:(ش-کن-دړ)اسم- واحد- مذکر- دَ کېډې درد- (افغانستان)-

شکنډه:(شکَن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو یوه لوبه-

شکنه:(شکهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- ساړه توده- صحبت- شریکه روټۍ- (۲)دَ پیازو ښوروا چې اکثر رنځورانو ته ورکولے شی- جمع شکنې-

شکڼه:(شکهٔ-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ شکوڼ ماده- (۲)شنډه ښځه-

شکور:(شکور)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شکرے-

شکور:(شکور)اسم- واحد- مذکر- دَ ملکانو یو قسم لوبه-

شک ورک:(شَ-کو-رک)اسم- بې خبری او ناکامی- دا تورے عام طور سره

ی" (مې-[illegible])، ې (مې-ره-وِل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

د لاعلمی او بې خبرۍ د پاره استعمالولے شي- مشکوک علم- وګورئ شک رک-

شکورے:(شکو-رے)اسم- واحد- مذکر- شکرے- شکور- جمع شکوری-

شکول:(شکه-ول)مصدر- (۱)شوکول- شلول- څیرې کول- بڼه کول- (۲)لوټول- د چا نه مال، کالي وغیره اخستل- (۳)راجدا- رابیلول-

شکول:(شه-که-ول)مصدر- د بېړیو ودرول- لکول- نېغول-

شکولے:(شکه-وه-لے)اسم مفعول- جمع شکولي- مؤنث شکولې- وګورئ شکول-

شکولے:(شه-که-وه-لے)اسم مفعول- جمع شکولي- مؤنث شکولې- وګورئ شکول-

شکون:(شکه-ون)حاصل مصدر- وګورئ شکول-

شکون:(شه-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ شکول-

شکونکے:(شکه-وون-کے)اسم فاعل- جمع شکونکي- مؤنث شکونکې- وګورئ شکول-

شکونکے:(شه-که-وون-کے)اسم فاعل- جمع شکونکي- مؤنث شکونکې- وګورئ شکول-

شکونګ:(شکه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ شکول-

شکونګ:(شه-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ شکول-

شکونه:(شکه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ شکول-

شکونه:(شه-که-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ شکول-

شکونے:(شکه-وو-نے)اسم فاعل- جمع شکوني- مؤنث شکونې- وګورئ شکول-

شکونے:(شه-که-وو-نے)اسم فاعل- جمع شکوني- مؤنث شکونې- وګورئ شکول-

شکوړ:(شکوړ)اسم- واحد- مذکر- یو ځناور چې په بدن کښې ئې غشي وي او د خطرې په وخت ترې کار اخلي- خارپشت- خارپښت-

شکوه:(شک-وه)اسم- واحد- مؤنث- ګله- ګیله- شکایت- (م- فارسی)-

شکوه:(ش-کوه)اسم- رعب- دبدبه- شان- دباب- پرتم- (م- فارسی)-

شکي:(شه-کي)اسم صفت- شک کونکے- ګومان کونکے- (م- فارسی)-

شکیه:(ش-کی-یه)صفت- د شک- شک ځرګندونکے- د ګومان-

شکېب:(شه-کېب)اسم- زغم- صبر- (م- فارسی)-

شکېبا:(شه-کې-با)اسم صفت- صبر کونکے- صابر- (م- فارسی)-

شکېبائي:(شه-کې-با-ئي)اسم- زغم- صبر- (م- فارسی)-

شکېدل:(شکې-دل)مصدر- شوکېدل- پرېکړے کېدل- څیرې کېدل- تار تار کېدل-

شکېدل:(شه-کې-دل)مصدر- د بېړیو ودرېدل-

شکېدن:(شکې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېدن:(شه-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېدنګ:(شکې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېدنګ:(شه-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېدنه:(شکې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېدنه:(شه-کې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېدونکے:(شکې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شکېدونکي- مؤنث شکېدونکې- وګورئ شکېدل-

شکېدونکے:(شه-کې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شکېدونکي- مؤنث شکېدونکې- وګورئ شکېدل-

شکېده:(شکې-ده)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېده:(شه-کې-ده)حاصل مصدر- وګورئ شکېدل-

شکېزه:(شکې-زه)اسم- واحد- مؤنث- اشکېزه- ټېزه- ټېنزه-

شکېلل:(شکې-لل)مصدر- سپېښته ودرول- بېړئ رغړول- بېړئ اچول- (افغانستان)-

شکېللے:(شکې-له-لے)اسم مفعول- وګورئ شکېلل-

شکېلندر:(شکې-لن-در)اسم- واحد- مذکر- (۱)مردکه- ټیق- ټیک- ارغه- ارغند- ارغوند- (۲)غټه سپېښته- غټه بېړله-

شکېلنه:(شکې-له-نه)حاصل مصدر- وګورئ شکېلل-

شکېلونکے:(شکې-لون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ شکېلل-

شکېلے:(شکې-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شپیلک (۱)-

شګاره:(شه-ګا-ره)اسم- واحد- مؤنث- بلاربه ښځه-

شګاف:(ش-ګاف)اسم- واحد- مذکر- چوړ- چاود- درز- (م- فارسی)-

شګرۍ:(شه-ګه-رۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱) د خاورینو لوښیو د جوړولو آله- (۲)مغه نچه چې په ټوپک کښې پرې بارود ټکولے شي-

شګفته:(شه-ګف-ته)اسم صفت- غوړېدلے- (م- فارسی)-

شګلن:(شګ-لن)اسم صفت- شګن- د شګو جوړ- شګه لرونکے- شګلوړې- مؤنث شګلنه-

شګلوړې:(شګ-لو-ړې)اسم صفت- وګورئ شګلن-

شګلونے:(شه-ګه-لو-نے)اسم- واحد- مذکر- د انسان لنډه- د ملا لاندینۍ حصه-

شګمامے:(شګ-ما-مے)اسم- واحد- مذکر- سمسره- جمع شګمامیان-

شګموښے:(شګ-مو-ښے)اسم- واحد- مذکر- رېکمال- (افغانستان)-

شګن:(شه-ګن)اسم صفت- وګورئ شګلن- مؤنث شګلنه- جمع مؤنث شګنې-

شګنه:(شه-ګه-نه)اسم صفت- مؤنث- وګورئ شګن-

شګوپه:(شه-ګو-په)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ارتیاکه- د ټوقو او درغو خبره- پوزه-

شګوفه:(شه-ګو-فه)اسم- واحد- مؤنث- د ګل کلۍ- غټۍ-

شګوم:(ش-ګوم)اسم صفت- (۱)ګوم سوم- چپ چاپ- خاموش- (۲)بې خبره- په څه نه پوهېدونکے-

شګون:(شه-ګون)اسم- واحد- مذکر- فال- پېش خبري- نیک فال- پال- (م- فارسی)-

"زبر"(خ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ۀ"(ز-ره)، "ۀ"(پو-ہې-دۀ)

شکه:(شهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د کاڼي د انتهائی وړو وړو زرو مجموعه- ریګ- ډبه-

شکیرنے:(ش-کیر-نے)اسم- واحد- مذکر- ړومبکے-

شکۍ:(شهٔ-کۍ)اسمِ صفت- مؤنث- (۱)شګلنه زمکه- شګلوړې زمکه- شګلینه- (۲)هغه ځاۍ چې خوړ پرې تېر شوے وی او شګه ېٔ پرېښې وی- (۳)ابرق- شګوګل-

شګۍ ګل:(شهٔ-ګۍ-ګل)اسم- دٔ ابرق کاڼے- بکری- شګے ګل-

شګے ګل:(شهٔ-ګے-ګل)اسمِ- وګورئ شګۍ ګل- شل:(شل)اسمِ عدد- دٔ نولسو او یوویشتو تر مینځه عدد- (۲۰)-

شل:(شَل)اسمِ صفت- (۱)هغه انسان یا ځناور چې لاسونه پښې ېٔ بېکاره وی- ګوزنی- (۲)بنجر- للمه- چې زرغونه نهٔ کوی-

شل:(شَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه پسهٔ (ګډ) چې دٔ مړی کور ته دٔ خپلوانو لهٔ خوا دٔ مدې پهٔ ډول ورکولے شی- مدیه- (۲)پوړی- زینه- اندرپایه- (۳)حرکت- خوزېدنه- (افغانستان)-

شل:(شَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)نېزه- برچی- هغه توره شان چې سر ېٔ تېرهٔ او غڼې وتلے وی- خنجر- شلګے- (۲- صفت)مغروره-

شلاټه:(شَ-لا-ټه)اسم- مؤنث- بیمِ- مونډه- خرند- خند- لښېګ- دٔ لوخې بېخ- دٔ ډیلې بېخ-

شلاخ:(شَ-لاخ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شلاق-

شلاغ:(شَ-لاغ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شلاق-

شلاغونه:(شَ-لا-غو-نه)اسم- پهٔ ګُتو خبرې کونه- څپکونه پهٔ خبرو کښې مخکښې مخکښې کونه-

شلاق:(شَ-لاق)اسم- (۱)شلاخ- شلاغ- چابک- تراټ- ترټ- (۲)شړک-

شلامیر:(شَلا-میر)اسم- واحد- مذکر- دٔ ماشومانو یوه لوبه- الله داد-

شلانټه:(شَلان-ټه)اسم- واحد- مؤنث- سمسره- سمسېره- دٔ کربوړی پهٔ شکل یو ځناور چې تیل (وازده) ېٔ دٔ مالش پهٔ دارو کښې پکارولے شی- شلانډه- جمع شلانټې-

شلانډه:(شَلان-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خادمی- خادمه- سمسره- سلانډه- شلانټه- (۲)چیندخ-

شلانګ:(شه-لانګ)اسم- واحد- مذکر- (۱) ټوپ- ټوپ وهنه- (۲)شلنګ-

شلانه:(شَلا-نه)اسم- مؤنث- شلانټه- شلانډه- سمسره-

شلانے:(شَلا-نے)اسم- واحد- مذکر- دٔ سمسرې پهٔ شان خو سمسرې نه لږ وړوکے یو ځناور چې تیل ېٔ خینو مرضونو له پکارولے شی- وګورئ شلانټه-

شلاونډ:(شَلا-ونډ)اسم- هغه جرمانه چې پهٔ قبیله یا خاندان تقسیم کړے شی- بسپنه- انداز- نوجی- اچاو- شلاوڼ- (افغانستان)-

شلاوڼ:(شَلا-وڼ)اسم- وګورئ شلاونډ-

شلبر:(شَل-بر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)شلګ- خیګ رخت- خیګه خیګه کپړه- شوله کپړه- (۲)بې ترتیبه بوټلے شوے څیز- (۳)عجیبه-

شلاوه:(شَلا-وه)اسم- واحد- مؤنث- یوه ابی ګیاه- دٔ أبو وابنهٔ-

شلپلارے:(شَل-پلا-رے)اسمِ صفت- هغه څوک چې نسل ېٔ معلوم نهٔ وی- حرامی- کم اصل-

شلت:(شَلت)اسمِ صفت- سست- بېکاره- آرام خوښونکے- لټ- ناراسته- کاږے واږے- سترے ستومانه- شل- شلټ-

شلتالو:(شَل-تا-لو)اسم- واحد- مذکر- شفتالو- یو قسم مېوه- نباتاتی نوم دٔ پاره وګورئ شفتالو-

شلته:(شَل-ته)اسم- مؤنث- (۱)دمبله- (۲)همیانی- امیانی- ببدزه- (م- فارسی)-

شلتې:(شَلهٔ-تې)اسم- جمع- مؤنث- (۱) هغه أربشې چې لا دٔ پوستکی نه راوتې نهٔ وی- (۲)ناسپېنې کړې أربشې-

شلټ:(شَلټ)اسمِ صفت- شلت- نارست- کامل- (۲)اومړی- پوست- اومړی- أبړی-

شلټه:(شَل-ټه)اسم- مؤنث- کشتی- بغری- پُرواړه ښخه-

شلخاتی:(شَ-له-خا-تی)اسم- دٔ وړو ماشومانو یوه لوبه- ایری بیری- هواری- شلغاتی-

شلخته:(شَ-لخ-ته)اسمِ صفت- بې حیا ښځه-

شلخو:(شَل-خو)اسم- واحد- مذکر- شلخے ټوپک- کارتوس- دره وال ټوپک-

شلخورکه:(شَل-خو-ره-که)اسم- مؤنث- سمسره- سانډه- سمساره-

شلخے:(شَل-خے)اسم- واحد- مذکر- دیسی ټوپک- بناوټی څیز- دیسی- نقلی څیز-

شلخے:(شَل-خے)اسم- واحد- مذکر- چلخے- یو بوټے چې دٔ غوا دٔ ژبې پهٔ شان وردې وردې پاڼې نیسی څاروی ېٔ هم خوری او دٔ ساګ پهٔ شان پخولے شی- ګاوزبان-

شلدانه:(شَل-دا-نه)اسم- مؤنث- دٔ مرغلرو امېل-

شل شلۍ:(شَل-شهٔ-لۍ)اسمِ عدد- مؤنث- څلور سوه- (۴۰۰)-

شلغاتی:(شَ-له-غا-تی)اسم- وګورئ شلخاتی-

شلغټ:(شَل-غټ)اسمِ صفت- بے ډوله- بدنمکه- بدقواره- بدشکله-

شلغشے:(شَل-غهٔ-شے)اسم- وګورئ شرغشے-

شلغم:(شَل-غم)اسم- مذکر- ټېپر- بنګړی- منګړېتے- یو قسم سبزی- نباتاتی نوم براسیکا رېپا (BRASSICA RAPA)-

شلق:(شَلق)اسم- (۱)وګورئ شلک- (۲)ګوزار- آسمانی تندر- شړق- چړق-

شلک:(شَلک)اسم- (۱)دٔ کولو مسلسل آواز- (۲)فوجی سلامی- (۳)ناپاکې أربشې- (م- فارسی)-

شلګ:(شَلګ)اسم- هغه کپړه چې نری او مهینه نهٔ وی-

شلکه:(شَلهٔ-که)اسمِ صفت- ناراستی- سُستی- شلکی-

شلکی:(شَلهٔ-کی)اسمِ صفت- وګورئ شلکه-

"ۍ" (ښی-زل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دٔ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

شلکے:(شَل-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ دستار خُنډے یا جیغه- شمله- قرقره-

شلک:(شه-لَک)اسم صفت- (۱)شړل ټوکے- (۲)شاړ- شړل- ړبړ کلک-

شلکتے:(شَل-کَ-تے)صفت- دَ ماشومانو پهٔ اصطلاح انسان- شل گُتې لرونکے-

شل گړ:(شَل-گړ)اسم مرکب- پهٔ لاس پښو معذور-

شلکره:(شَله-کۀ-ره)اسم- مؤنث- جړی- پرله پسې باران- دَ ژمی تر مفتې یا زیاتې مودې پورې متواتر باران- دَ یخنی باران-

شلکون:(شَل-گون)صفت- (۱)دَ شلو سره متعلق- شلکونے- (۲- اسم)دَ شلو روپو نوټ- (افغانستان)-

شلکونه:(شَل-کو-نه)اسم- وګورئ پونډ-

شلکونے:(شَل-گو-نے)صفت عددی- وګورئ شلکون-

شلکه:(شَل-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ غنمو دَ وړی لشه- (۲)بُوس- دَ غنمو دَ غوبل کولو نه پس چې دانه بیله شی او دَ غنمو بوټےاو پلے چوری چوری شی مغه بیا دَ خاروو دَ کیاه پهٔ توکه مم ورکېدے شی او پهٔ خټو کښې مم استعمالولے شی-

شلکے:(شَل-کے)اسم- دَ شل نه اسمِ تصغیر- (۱)بلم- دَ شل نه وړوکے چې تېزه او نرۍ څوکه يې وی- (۲)وړوکے تبر چې ملنګان يې خان سره گرځوی- (افغانستان)-

شلکۍ:(شَل-کۍ)اسم- مؤنث- (۱)وړوکے تاخ- طاقچه- (۲)ړیوټ-

شللو:(شَ-له-لو)اسم- کم غوړ لرونکې ډېره ښوروا- (افغانستان)-

شلم:(شَلم)صفت- (۱)سُست- اَرجل برجل- (۲)نښتے- (۳)دَ کلک ضد-

شلم:(شه-لَم)صفت- عددی صفت چې دَ نولسم او یوویشتم تر مینځ درجه ښئ-

شلم خېتے:(شَلم-خې-تے)اسم صفت- خاپوړن- سسته او درنه کېډه لرونکے-

شلمدنه:(شَ-لم-دۀ-نه)اسم- مؤنث- دَ یوهٔ نبات سټه چې پهٔ دوایی کښې پکارولے شی- رنبے- ړوے- یونانی طبی اصطلاح کښې ورته ثعلب مصری وئیلے شی- (افغانستان)-

شلمول:(شَله-مه-وَل)مصدرِ متعدی- شړمول- بې ړوله کول- بې جوړه کول- سستول- درنول-

شلمون:(شَله-مه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شلمول-

شلمونکے:(شَله-مه-وون-کے)اسم فاعل- وګورئ شلمول-

شلمونک:(شَله-مه-وَنک)حاصلِ مصدر- وګورئ شلمول-

شلمونه:(شَله-مه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شلمول-

شلمېدل:(شَله-مې-دَل)مصدرِ لازم- غتېدل- شړمېدل- بې جوړه کېدل- بې ړوله کېدل- سستېدل-

شلمېدن:(شَله-مې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شلمېدل-

شلمېدنک:(شَله-مې-دَنک)حاصلِ مصدر- وګورئ شلمېدل-

شلمېدنه:(شَله-مې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شلمېدل-

شلمېدونکے:(شَله-مې-دُون-کے)اسم فاعل- وګورئ شلمېدل-

شلمېدۀ:(شَله-مې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ شلمېدل-

شلنډ:(شَلَنډ)صفت- مذکر- غښ- تازه- څرب- غټ پټ- تیار-

شلنډتوب:(شَلَنډ-توب)اسم- واحد- مذکر- څربښت- مضبوط والے- غټ والے-

شلنډتیا:(شَلَنډ-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ شلنډتوب-

شلنډول:(شَلَن-ډه-وَل)مصدرِ متعدی- څربول- غټول-

شلنډون:(شَلَن-ډه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شلنډول-

شلنډون:(شَلَن-ډُون-)اسم- وګورئ شلنډول-

شلنډونکے:(شَلَن-ډه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع شلنډونکی- مؤنث شلنډونکې- وګورئ شلنډول-

شلنډونک:(شَلَن-ډه-وَنک)حاصلِ مصدر- وګورئ شلنډول-

شلنډونه:(شَلَن-ډه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شلنډول-

شلنډه:(شَلَن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شلانډه- خادمې- څمڅره- سمسره- (۲- صفت)دَ شلنډ مؤنث-

شلنډېدل:(شَلَن-ډې-دَل)مصدر- څربېدل- غټېدل-

شلنډېدن:(شَلَن-ډې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ شلنډېدل-

شلنډېدنک:(شَلَن-ډې-دَنک)حاصلِ مصدر- وګورئ شلنډېدل-

شلنډېدنه:(شَلَن-ډې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شلنډېدل-

شلنډېدونکے:(شَلَن-ډې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع شلنډېدونکی- مؤنث شلنډېدونکې- وګورئ شلنډېدل-

شلنډېدۀ:(شَلَن-ډې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ شلنډېدل-

شلنګ:(شِ-لنګ)اسم- واحد- مذکر- دَ برطانیې دَ یوې سکې نوم- دَ پونډ شلمه حصه- جمع شلنګونه- (م- انګریزی)-

شلنګ:(شِ-لنګ)اسم- واحد- مذکر- مغه تسمه چې ټوپک ته دَ ځوړندولو او غاړه کښې دَ اچولو دَ پاره اچولے شی-

شلوانی:(شَل-وا-نی)اسم- واحد- مؤنث- یوه غرنیزه مېوه-

شل وشوټ:(شَ-لو-شوټ)اسم صفت- شل گړ- دَ کاره وتے- شول وشل-

شلول:(شَله-وَل)مصدر- بڅه کول- څیرې کول-

شلولے:(شَله-وۀ-لے)اسم مفعول- جمع شلولی- مؤنث شلولې- وګورئ شلول-

شلوم:(شَلوم)اسم- دَ کچو دَ ویلی کولو نه پاتې خیرے-

شلومباوڼ:(شَلوم-با-وَڼ)اسم- دَ قروتو تېلۍ- مغه کڅوړه چې شوملې پکښې دَ دې دَ پاره اچولے شی چې اُبهٔ ترې وبهیږی او چکه يې لاندې پاتې شی-

شلومبکه:(شَلوم-به-که)اسم- واحد- مؤنث- پرې پرې او شین والی ته مائلې پلنې پاڼې لرونکے یو قسم بوټے- جمع شلومبکې-

شلومبل:(شَلوم-بل)مصدر- شوملې کول- شاربل-

شلوملې:(شَلوم-لې)اسم- شوملې- لسی-

شلون:(شَله-وَن)حاصل مصدر- وګورئ شلول-

شلونکے:(شَله-وون-کے)اسم فاعل- جمع شلونکی- مؤنث شلونکې- وګورئ شلول-

شلونک:(شَله-وَنک)حاصلِ مصدر- وګورئ شلول-

شلونه:(شله-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ شلول-

شله:(شه-له)اسم- واحد- مؤنث- د ځاروی د یو خاص قسم وازدې یا د کډ د لم نه ایستلے شوی غوړ-

شلی:(شهٔ-لی)صفت- (۱)پهٔ شلو اړوند- پهٔ شلو مربوط- (۲- اسم)غله- دانې-

شلی:(ش-لی)اسم- یو قسم غنمینه روټۍ چې پهٔ تبخې پخولے شی- (افغانستان)-

شلیاپه:(شل-یا-په)اسم- واحد- مؤنث- د پرتوګ مغه برخه چې پرتوغاښ پکښې اچولے شی- بګه- بډه- کنډه- سروزنه- (افغانستان)-

شلیته:(ش-لی-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)کاسیره ښځه- پلشته- رنډی- (۲)جوټه- پس خورده-

شلیته:(ش-لی-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مغه پرده یا جلۍ چې د اُوښ د بړبړی پهٔ وخت کښې ئې د خُلې نه بهر ته راوځی- (۲)بړبرے دلی- امبار- (۳)بیرو- کوړے- ترنګړ- کته- کوپے- لوئ غُوندے- لوئ جوال- لوئ غُونج- (۴)بوری- (۵)همیانی- د پیسو کڅوړه- (م- هندی)-

شلیک:(شلیک)اسم صوت- شلک- د ټوپک باړونه- د ټوپک پرله پسې ډزې- د ټوپک غوړم-

شلیکے:(شلي-کے)اسم- واحد- مذکر- اشتغ- اشتق- وګورئ شلیل-

شلیل:(ش-لیل)اسم- مذکر- شلیلان- شفترنګ- د شلتالو پهٔ شان یوه میوه- تالانه-

شلېدل:(شه-لې-دل)مصدر لازم- د څهٔ ناروغۍ پهٔ وجه د لاس یا پښې ناکاره کېدل- شل کېدل-

شلېدل:(شلې-دل)مصدر لازم- پرېکېدل- کټ کېدل- ځیرې کېدل-

شلېدلے:(شلې-دهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ شلېدل-

شلېدن:(شه-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلېدن:(شلې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلېدنګ:(شه-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلېدنګ:(شلې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلېدنه:(شه-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلېدنه:(شلې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلېدون:(شلې-دون)اسم- وګورئ شلېدل-

شلېدونکے:(شه-لې-دون-کے)اسم فاعل- وګورئ شلېدل-

شلېدونکے:(شلې-دون-کے)اسم فاعل - وګورئ شلېدل-

شلېدهٔ:(شه-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلېدهٔ:(شلې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ شلېدل-

شلے:(شه-لے)اسم صفت- هغه سړے چې پښې یا لاس ئې بېکاره وی- جمع شلیان-

شم:(شم)اسم- د شمع مخفف- (افغانستان)-

شماخه:(شه-ما-خه)اسم- واحد- مؤنث- شمخه- شوخه- یو قسم ګیاه چې عموماً پهٔ جبو کښې کېږی-

شماخې:(شه-ما-خې)اسم- واحد- مؤنث- د چایو مغه پاڼې چې د دمولو نه وروستو پهٔ لوښی کښې پاتې شی- (افغانستان)-

شمار:(شمار)اسم- واحد- مذکر- (۱) شمېر- ګنتی- تعداد- (۲)نوکری-

شمارل:(شما-رل)مصدر متعدی- شمېرل- حسابول-

شمارلے:(شما-رهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ شمارل-

شمارنه:(شما-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شمارل-

شمارونکے:(شما-رون-کے)اسم فاعل- جمع شمارونکی- مؤنث شمارونکې- وګورئ شمارل-

شمال:(ش-مال)اسم- واحد- مذکر- (۱)قطب طرف- د قبلې پهٔ طرف د مخ لرونکی د ښی لاس طرف- (م- عربی)-

شمال:(شه-مال)اسم- واحد- مذکر- نرے باد- نری هوا-

شمالی:(ش-ما-لی)اسم- قطبی- شمال سره متعلق-

شمان:(ش-مان)اسم- واحد- مذکر- خاکروبه- جاروکښه- مغه خاورې خځلې وغیره چې پهٔ جارو کولو سره یو ځائې ته راغنډې کړے شی-

شمائل:(ش-ما-ئل)اسم- جمع- مذکر- (۱)خدوخال- شکل وصورت- رغوڼه- (۲)عادتونه- خویونه- (م- عربی)-

شمبلکار:(شم-بل-کار)اسم- د زمرو یو قسم- سمبلخار- (م- عربی)-

شمتکر:(ش-مت-کر)اسم صفت- شمتو- خټمیرے- غیبت کونکے- مرګوټے-

شمتو:(ش-مه-تو)اسم صفت- وګورئ شمتکر-

شمتوده:(شم-تو-ده)اسم- مؤنث- یو قسم مرغی- تورکه-

شمته:(شه-مه-ته)اسم- واحد- مؤنث- د ماشومانو یو قسم لوبه- کرخی- جمع شمتې-

شمخرے:(شم-خهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- د ملا تیر- ملامزے- شجی- پشت مازه-

شمخه:(ش-مه-خه)اسم- مؤنث- وګورئ شماخه-

شمدی:(شم-دی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم بوټے چې ګلونه او پاڼې ئې خوشبوئی کوی-

شمدیتې:(شم-دی-تې)اسم- جمع- مؤنث- ملخوزې- یو قسم سبزی- میتری- نباتاتی نوم ټرائی ګونیلم فینم ګرے کم (TRI GONELLUM FANUM GRAECUM)-

شمری:(شه-مه-ری)اسم صفت- ظالم- قاتل- شمر سره منسوب-

شمزی:(شم-زی)اسم- مؤنث- وګورئ شمخرے-

شمس:(شمس)اسم- واحد- مذکر- آفتاب- نمر- (م- عربی)-

شمسی:(شم-سی)اسم صفت- شمس سره متعلق- لمریز- نمریز-

شمسی:(شم-سی)اسم- (۱)غوشان- غوشیان- (۲)د ماشومانو د سر ترلو پټی- سرتړونے-

شمشاد:(شم-شاد)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یوه ونه چې ډېره اُوچته وی- نباتاتی نوم بکسز سیمپرویرینز (BUXUS SEMPERVIRENS)- (م- فارسی)-

شمشاړی:(شَم-شا-ړی)اسم- ازېږدلے پټے دوباره اړونه- دوواله- دواله-

شمشتی:(شَم-ش-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- شخنتی- بنمزی- شکرتانے-

شمشمه:(شَم-شه-مه)اسم- مؤنث- شان وشوکت- دبدبه- احتشام- سپاوه- سرلوړی- افتخار-

شمشو:(شَم-شو)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کنبډ کولو یوه آله- سیخچه- دَ غلو ځورلے- مغه اوزار چې کنبډ پرې کولے شی- (۲)تېشی-

شمشو:(شَم-شو)اسم- کاڼی یا ګټکی وینځنه- دَ پخلی نه وړومبے دَ وریژو یا دالو نهٔ نری نری کاڼی، ګټکی ایستنه- شنګشویه-

شمشېر:(شَم-شېر)اسم- واحد- مذکر- توره- تېغ- (م- فارسی)-

شمشېر باز:(شَم-شېر-باز)اسم صفت- توره باز- تورزن-

شمشېرکه:(شَم-شې-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- موټی-

شمع:(شه-مع)اسم- واحد- مؤنث- دَ مومو باتی- شمه- شم- جمع شمعې-

شمع دان:(شه-مع-دان)اسم- واحد- مذکر- پېوټ- دَ شمې دَ ایښو او بلولو لوښے- جمع شمع دانونه-

شمکلے:(شَم-که-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پټکی یا څادر څوکو ته شوے خندے (۲)مغه تیګړے چې دَ ژرندې دَ پل نه پورې دَ اوړو دوړه راټولوله شی- آسیاپاک- (۳)پاتې شوے څیز- پاتې شون- جمع شمکلی-

شمکور:(شَم-کور)اسم صفت- شبکور- مغه څوک چې دَ شپې یې نظر نهٔ لګی-

شمکورتیا:(شَم-کور-تیا)اسم- واحد- مؤنث- شمکوری- شبکوری- شمکوروالے-

شمکوروالے:(شَم-کور-وا-لے)اسم- شمکورتیا-

شمکوری:(شَم-کو-ری)اسم- وګورئ شمکورتیا-

شمکی:(شه-مه-کی)اسم صفت- مکاره- کنجره(بنځه)-

شمکے:(شه-مه-کے)اسم- واحد- مذکر- یو تریخ بوټے چې پهٔ دارو کښې پکارولے شی- جمع شمکی-

شملانه:(شَم-لا-نه)اسم- بې اعتنائی- بې پروائی-

شملګی:(شَم-له-ګی)اسم تصغیر- مؤنث- وړه شمله-

شمله:(شَم-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ پټکی ځغه- طره- کبوه- شکلی- شلکے- دَ پټکی مغه برخه چې وچته ولاړه وی-

شملې:(شَم-لې)اسم- جمع- مؤنث- شوملې- شړومبې-

شمندروز:(شه-مند-روز)اسم- واحد- مذکر- شماندروز- (۱)دَ کناویز ټوکے- یو پرق پرونق کونکے ټوکے- (۲)دَ سنبل ګل- دَ لاله ګل- شمنروز- شب اندروز-

شمنکوټے:(شه-مَن-کو-ټے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم واښهٔ - شمندکوټے- جمع شمنکوټی-

شمو:(شه-مو)اسم- یوه ګنداره ټوکره- کشیده شوې ټوکره-

شموټکر:(شه-موټ-کر)اسم صفت- غیبت کونکے- چغل خور- غیبتی-

شموخه:(شه-مو-خه)اسم- واحد- مؤنث- مغه ګیاه چې پهٔ شولو او مکیو کښې عام طور سره کیږی- شمخه- شماخه- جمع شموخې-

شمول:(شه-مول)اسم- شمولیت- شاملېدنه- شریکېدنه- شرکت- (م- عربی)-

شمولیت:(شه-مو-لی-یَت)اسم- وګورئ شمول-

شمی:(شه-می)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو دَ سر ترلو پټی-

شمیا:(شَم-یا)اسم- دَ تنخری مومره یو مارغهٔ-

شمیم:(شه-میم)اسم- خوشبوداره هوا- (م- عربی)-

شمېر:(شمېر)اسم- شمارنه- شماره- تعداد- حساب- حسابه-

شمېرګر:(شمېر-ګر)اسم صفت- شمېره کونکے- حساب کونکے-

شمېرل:(شمې-رل)مصدر- شمارل- شمېر کول- تعداد لګول- پهٔ حساب کول-

شمېرلے:(شمې-رهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شمېرلی- مؤنث شمېرلې- وګورئ شمېرل-

شمېرن:(شمې-رن)حاصل مصدر- وګورئ شمېرل-

شمېرنګ:(شمې-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ شمېرل-

شمېرونکے:(شمې-رون-کے)اسم فاعل- جمع شمېرونکی- مؤنث شمېرونکې- وګورئ شمېرل-

شمېرنه:(شمې-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شمېرل-

شناخت:(شه-ناخت)اسم- پېژندګلو- تعارف- (م- فارسی)-

شناخته:(شه-ناخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شاخه- مغه تخته چې دَ قبر پهٔ سر لګېدلې وی او دَ مړی نوم او تاریخ وفات پرې درج وی- شناخخه- شنخته- (۲- صفت)اشنا- پېژندویه-

شناخخه:(شه-ناخ-خه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شناخته-

شناختیا:(شه-ناخ-تیا)اسم- تعارف- پېژندګلو- شناخت-

شناره:(شنا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ازغی یو قسم- جمع شنارې- (افغانستان)-

شناز:(شه-ناز)اسم- واحد- مذکر- دَ لامبو دَ پاره پکارونکے مشک چې دَ هوا نه ډک وی- جمع شنازونه-

شنازکښے:(شه-ناز-کې-ښے)اسم صفت- دَ شناز پهٔ شان غټه ګېډه لرونکے-

شناس:(شه-ناس)لاحقه- یوه لاحقه چې دَ پېژندګلو معنیٰ ورکوی-

شناسا:(شه-نا-سا)اسم- پېژندونکے- بلد-

شناغله:(شناغ-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ هندوانې دَ خېلی پهٔ شان دَ چنې پهٔ شان ازغی لرونکے یو خنګلی بوټے او دَ مغې دانې- شنې-

شنالغه:(شنال-غه)اسم- واحد- مؤنث- مغه اوړهٔ چې خمبیره شوی نهٔ وی- پتیره اوړهٔ-

شناوړی:(شَ-نا-و-ړی)اسم- یوه غرنیزه مېوه چې وړې وړې شنې دانې نیسی-

شناوی:(شه-نا-وی)اسم- می وریژې- دَ ریږې مغه وبښتهٔ چې نهٔ بیخی تور وی او نهٔ سپین- ګډه وډه ریږه- (افغانستان)-

شناوی:(شه-نا-وی)اسم- شوملې- شړومبې- لسی-

شنتاغے:(شن-تا-غے)اسم- واحد- مذکر- شین تېغ- یو قسم شین رنګې مرغی-

شنتۍ:(شن-تۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- تکر- شنډۍ- ړکه- بند- د تیږو هغه دېوال چې زمکه د اُبو د چپې او د سېلاب لۀ دباؤ بچ کوی- (افغانستان)-

شنخته:(شه-نخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شناخته-

شند:(شند)اسم- شاهین- شهند- یو ښکاری مارغۀ-

شندل:(شن-دل)مصدر- شنل- نستل- خورول- شیندل-

شندلے:(شن-دۀ-لے)اسم مفعول- جمع شندلی- مؤنث شندلې- وګورئ شندل-

شندن:(شن-دن)حاصل مصدر- وګورئ شندل-

شندنګ:(شن-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شندل-

شندنه:(شن-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شندل-

شندونکے:(شن-دون-کے)اسم فاعل- جمع شندونکی- مؤنث شندونکې- وګورئ شندل-

شنده:(شن-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فضول خبره- (۲)مسخره- (۳)زیات خرچ- اسراف- (۴)کانه- ظلم- جبر- زور- جمع شندې-

شندی:(شن-دی)اسم- د ګل لاله یو قسم- د یو ګل نوم- شیندے-

شنډ:(شنډ)اسم صفت- (۱)بې حاصله- بې فائدې- (۲)بې اولاده- ځ(۳)مېوه نۀ لرونکې وَنه- (۴)بې نتیجې-

شنډاک:(شن-ډاک)اسم- د یوې لوښې نوم-

شنډتوب:(شنډ-توب)اسم- بې حاصله کېدنه- شنډېدنه- شنډوالے- شنډتیا-

شنډتیا:(شنډ-تیا)اسم- وګورئ شنډتوب-

شنډوالے:(شنډ-وا-لے)اسم- وګورئ شنډتوب-

شنډېدل:(شن-ډې-دل)مصدر- (۱)بې حاصله کېدل- بې فائدې کېدل- (۲)بې اولاده کېدل- لۀ اولاده پاتې کېدل- (۳)د وَنې مېوه نۀ نیول-

شنډېدن:(شن-ډې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شنډېدل-

شنډېدنګ:(شن-ډې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شنډېدل-

شنډېدنه:(شن-ډې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شنډېدل-

شنډېدونکے:(شن-ډې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شنډېدونکی- مؤنث شنډېدونکې- وګورئ شنډېدل-

شنډېدۀ:(شن-ډې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ شنډېدل-

شنقار:(شن-قار)اسم- واحد- مذکر- شنقر- یو ښکاری مارغۀ- باز- (م-فارسی)-

شنقر:(شن-قر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شنقار-

شنګ:(شنګ)اسم- (۱)نبندره- نندره- (۲)سیالی-

شنکے:(شن-کے)اسم- بیخی کچه ختکے- شین ختکے-

شنګ:(شنګ)اسم صفت- لږ شان- پۀ لږ مقدار کښې-

شنګ:(شنګ)اسم صوت- د ګولی اُواز-

شنګار:(شنګ-ګار)اسم صوت- د ګولیو مسلسل اواز- د شنګ شنګ اُواز-

شنګاړه:(شنګ-ګا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کانیزه زمکه- جمع شنګاړې-

شنګال:(شنګ-ګال)اسم- شوره- ښوره-

شنګرپ:(شنګ-رپ)اسم- وګورئ شنګرف-

شنګرف:(شنګ-رف)اسم- واحد- مذکر- د سور رنګ یو قسم دمات- شنګرپ-

شنګرړ:(شنګ-رړ)اسم- واحد- مذکر- مرخاڼی- عناب- د بېرو پۀ شان یوه مېوه- نباتاتی نوم ریم نس ززی فس (RHAMNUS ZIZYPHUS)-

شنګرې:(شنګ-رې)اسم- واحد- مؤنث- (۱) د خاورینو لوښو جوړولو قالب- (۲)برج چې د خفاظت د پاره جوړولے شی- ټاپو- د کوټې پۀ ګټ جوړه شوې مورچه-

شنګړ:(شنګ-ګړ)اسم- شګون- فال- شنګڼ-

شنګړه:(شنګ-ګه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- متېزه- هغه ښځه چې د خپلې کورنۍ د رضا نه بغېر چا پسې لاړه شی- جمع شنګړې-

شنګشویه:(شنګ-شو-یه)اسم- وګورئ شمشو-

شنګل:(شنګ-ګل)اسم- غټ کانی لرونکې باجرې-

شنګڼ:(شنګ-ګڼ)اسم- وګورئ شنګړ-

شنګورے:(شنګ-ګو-رے)اسم- یو قسم ازغی لرونکے غرنیز بوټے چې د دستونو او پېچ د پاره د دوا پۀ طور استعمالیږی-

شنګه:(شنګ-ګه)اسم صوت- د ګولی اُواز-

شنګېړ:(شنګ-ګېړ)اسم- نری باجرې-

شنل:(شه-نل)مصدر- (۱)الټول- پلټل- تالاشی کول- (۲)تار تار کول- شنول- شیندل- (۳)کینل- کینودل-

شنلے:(شه-نۀ-لے)اسم مفعول- جمع شنلی- مؤنث شنلې- وګورئ شنل-

شنن:(شه-نن)حاصل مصدر- وګورئ شنل-

شننګ:(شه-ننګ)حاصل مصدر- وګورئ شنل-

شننه:(شه-نۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شنل-

شنوالی:(شن-وا-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د ښوون د وَنې زړی او دانې- ښونلی-

شنوبې:(شنو-بې)اسم- جمع- مؤنث- شوملې- شړومبې- تروې-

شنوپے:(شنو-پے)اسم- واحد- مذکر- د شړشم، جمامې او اوری د خاندان یو قسم بوټے- خاکشیر- جمع شنوپی-

شنول:(شه-نه-ول)مصدر- خورول- خښول- لړل- وګورئ شنل-

شنون:(شه-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ شنول-

شنونکے:(شه-نون-کے)اسم فاعل- جمع شنونکی- مؤنث شنونکې- وګورئ شنل-

شنونکے:(شه-نه-وون-کے)اسم فاعل- جمع شنونکی- مؤنث شنونکې- وګورئ شنول-

شنونه:(شه-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شنول-

شنه:(ش-نه)اسم- شینے- یو قسم دانه-

شنه:(شنه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)د شین مؤنث- شین رنګې- (۲)تازه-

شنه ګوشنه:(شنه-ګوش-نه)اسم صفت- تکه شنه-

شنه زرغنه:(شنه-زر-غ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بوټي نال-

شنيل:(شه-نيل)اسم- واحد- مذکر- دَ مخمل دَ قسم غټ پشم لرونکي کپړه-

شنې:(شنې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)دَ کورګرۍ په رنګ يو غرنيزه وَنه او دَ هغې مېوه- دَ خنجک دَ وَنې غوړې دانې- (۲)مې-

شنېدل:(شه-نې-دل)مصدر- (۱)خوزېدل راخوزېدل- لړزېدل- (۲)په اضطراب کښې کېدل- پرېشانه کېدل-

شنېدن:(شه-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شنېدل-

شنېدنګ:(شه-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شنېدل-

شنېدنه:(شه-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شنېدل-

شنېدونکے:(شه-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شنېدونکي- مؤنث شنېدونکې- وګورئ شنېدل-

شنېدهٔ:(شه-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ شنېدل-

شنے:(ش-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ شينے ۲-

شڼ:(شڼ)اسم صفت- (۱)مست- (۲- اسم صوت)دَ اَس خرړېدنه- دَ اَس خرنه- (۳)دَ زنځير دَ لړيو خپلو کښې دَ جنګېدو اَواز- شړنګا- شرنګا- (۴)ځنډ-

شڼا:(شه-ڼا)اسم صوت- (۱)دَ اَس خرړېدنه- (۲)شړنګا- (۳)دَ اَس مستي- (اسم)-

شڼتيا:(شڼ-تيا)اسم- مستي- شڼا-

شڼار:(شهٔ-ڼار)اسم صوت- شڼهار- شرنګهار- دَ شڼېدو اَواز-

شڼول:(شهٔ-ڼه-ول)مصدر- (۱)بوټي خوزول- ځنډل- (۲)اَس مېړول-

شڼولے:(شهٔ-ڼه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شڼولي- مؤنث شڼولې- وګورئ شڼول-

شڼون:(شهٔ-ڼه-ون)حاصل مصدر- وګورئ شڼول-

شڼونکے:(شهٔ-ڼه-وون-کے)اسم فاعل- جمع شڼونکي- مؤنث شڼونکې- وګورئ شڼول-

شڼونه:(شهٔ-ڼه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شڼول-

شڼهار:(شهٔ-ڼه-هار)اسم صوت- (۱)دَ اَس دَ خرنې اَواز- دَ اَس دَ خرړېدو اواز- (۲)دَ بوټي دَ خوزولو اَواز- دَ بوټي دَ ځنډلو اَواز-

شڼېدل:(شهٔ-ڼې-دل)مصدر- (۱)خوزېدل- (۲)دَ اَس خرړېدل-

شڼېدن:(شهٔ-ڼې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شڼېدل-

شڼېدنګ:(شهٔ-ڼې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شڼېدل-

شڼېدونکے:(شهٔ-ڼې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شڼېدونکي- مؤنث شڼېدونکې- وګورئ شڼېدل-

شڼېدنه:(شهٔ-ڼې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شڼېدل-

شڼېدهٔ:(شهٔ-ڼې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ شڼېدل-

شو:(شو)کلمه- دَ خر دَ زدرزلو اَواز-

شو:(شو)ماضي مطلق- دَ لېدل مصدر نه دَ ماضي مطلق صيغه-

شواخون:(شه-وا-خون)اسم- تکليف - مصيبت- ځيګرخون-

شوار:(شوار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غزېدلے- غوړېدلے- خور وور- هوار- اوار- (۲)واز- ارت- ازاد-

شواروز:(شه-وا-روز)اسم- (۱)شب وروز- شپه او ورځ- (۲)دَ اَبهٔ خور يوه پېمانه چې په وقفه وقفه کښې ځليريشت ګنټو دَ پاره دَ زمکې دَ اَبولو دَ پاره مقرر شوې وي-

شواروزي:(شه-وا-رو-زي)اسم صفت- (۱)دَ شواروز سره متعلق- (۲)په يو شواروز کښې دَ اَبهٔ خور وار لرونکے ملکرے-

شوارول:(شوا-ره-ول)مصدر- (۱)غزول- خورول- اوارول- هوارول- (۲)وازول- ازادول- ارتول-

شوارون:(شوا-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ شوارول-

شوارونکے:(شوا-ره-وون-کے)اسم فاعل- جمع شوارونکي- مؤنث شوارونکې- وګورئ شوارول-

شوارونګ:(شوا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ شوارول-

شوارونه:(شوا-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شوارول-

شوارېدل:(شوا-رې-دل)مصدر- (۱)خوزېدل- غزېدل- (۲)ازادېدل- وازېدل- ارتېدل-

شوارېدلے:(شوا-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع شوارېدلي- مؤنث شوارېدلې- وګورئ شوارېدل-

شوارېدن:(شوا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ شوارېدل-

شوارېدنګ:(شوا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ شوارېدل-

شوارېدونکے:(شوا-رې-دون-کے)اسم فاعل- جمع شوارېدونکي- مؤنث شوارېدونکې- وګورئ شوارېدل-

شوارېدنه:(شوا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ شوارېدل-

شوارېدهٔ:(شوا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ شوارېدل-

شواړ:(شواړ)اسم صفت- (۱)ناهموار- سخت- کلک- لواړ- (۲)وران ويجاړ- (۳)بې ترتيبه- بې نظمه- (۴)شړم- سست- ځغنے-

شواړه:(شواړه)اسم- واحد- مؤنث- شاړه- غېرآباده- بنجره زمکه-

شواړې شواړې:(شوا-ړې-شوا-ړې)صفت- (۱)ځيرې ځيرې- ريښې ريښې- (۲)ګډوډ- بې نظمه- (۳)سست پست- (۴)کلک- سخت-

شوازور:(شه-وا-زور)متعلق فعل- په دَوَ- په جلتۍ- نېغ په نېغه- په تراټ-

شواشو:(شه-وا-شو)متعلق فعل- (۱)شپه په شپه- (۲)بغېر لهٔ ايسارېدو- (۳)متواتر-

شوال:(شه-وال)اسم- واحد- مذکر- دَ واړهٔ اختر مياشت- (م- عربي)-

شوان:(شه-وان)اسم- شوانه- جاندانه- ځځنکے- ځځويکے- شودانه-

شوانه:(شه-وا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ شوان-

شوبا:(شو-با)اسم صفت- شوپا- ناسُونته- هغه کس چې سُونت شوے نهٔ وي- شوپړ- شوپه-

شوبلکه:(شوب-له-که)اسم- واحد- مؤنث- شوبله- خنځه-

شوبله:(شوب-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه لښتے چې دَ زيمناکې زمکې

ښکانځه:(ښکان-ځه)اسم- واحد- مؤنث- زيږه- کنځل- بکواس- سپکه ژبنا- بده وينا- شکانځه- بدرد -

ښکتنے:(ښکه-ته-نے)صفت- دُ ښکته- ښکته- لاندينے-

ښکته:(ښکه-ته)صفت- (۱)لاندې- ښکتنے- زيرين- (۲)مغلوب-

ښکته پورته:(ښکه-ته-پور-ته)صفت- مرکب- لاندې باندې- لوړ ژور- نشيب و فراز- هسک و ټيټ-

ښکته والے:(ښکه-ته-وا-لے)اسم- لاندې والے- ټيټوالے-

ښکر:(ښکر)اسم- واحد- مذکر- دُ غوئي، سنډا، چېلي وغېره په سر کښې راختلے دُ هډوکي سخت ښاخ- جمع ښکرونه/ښکران-

ښکر:(ښکر)اسم- واحد- مذکر- دُ نانئ دُ يو کالي نامه چې دُ وهلي رګ نه پرې وينه وباسي-

ښکرور:(ښکهٔ-ره-وَر)صفت- ښکري- ښکرے- (۱)چې ښکرونه لري- دُ ښکرونو خاوند- (۲)طاقتور- ښاخور- مؤنث ښکروره-

ښکرۍ:(ښکه-رۍ)صفت- (۱)وګورئ ښکرور- (۲)مؤنث- وګورئ ښکري-

ښکرۍ:(ښکه-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- شکرۍ- ټوکرۍ- وړوکې ټوکرۍ- ښکري-

ښکرے:(ښکه-رے)صفت- وګورئ ښکرور-

ښکل:(ښکل)مصدر متعدي- (۱)کښل- ليکل- تحريرول- (۲)ايستل- ختمول- دُ څهٔ کار نه ايستل-

ښکل:(ښکل)مصدر- (۱)پـپه اخستل- کوکۍ اخستل- مچې کول- چپې اخستل- وګورئ ښکلول- (۲)بيه- مچه- بوسه-

ښکلا:(ښکو-لا)اسم- واحد- مؤنث- حسن- ښايست- ښائست-

ښکلل:(ښکو-لل)مصدر متعدي- ښکلے کول- ښائسته کول- شکلل- جوړول-

ښکللے:(ښکو-لهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښکلل-

ښکلو:(ښکو-لو)اسم- واحد- مذکر- نښه- داغ-

ښکلوکی:(ښکو-لو-کی)اسم تصغير- دُ ماشوم دُ پاره دُ مينې تورے- ښائسته-

ښکلول:(ښکو-له-وَل)مصدر متعدي- (۱)چـپې کول- چومل- پپې اخستل- کوکۍ اخستل- (۲)ښائسته کول-

ښکلون:(ښکو-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ښکلول-

ښکلونکے:(ښکو-له-وَون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښکلول-

ښکلونګ:(ښکو-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښکلول-

ښکلونه:(ښکو-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښکلول-

ښکلوهٔ:(ښکو-له-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښکلول-

ښکلي:(ښکو-لي)صفت- جمع- مذکر- دُ ښکلے جمع- مؤنث ښکلې-

ښکلي:(ښکهٔ-لي)صفت- کښلي- ليکلي شوي-

ښکلېدل:(ښکو-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)چپې کېدل- چومېدل- (۲)ښائسته کېدل-

ښکلېدن:(ښکو-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ښکلېدل-

ښکلېدنګ:(ښکو-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښکلېدل-

ښکلېدنه:(ښکو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښکلېدل-

ښکلېدونکے:(ښکو-لې-دَوَن-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښکلېدل-

ښکلېدهٔ:(ښکو-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښکلېدل-

ښکلے:(ښکو-لے)صفت- ښائسته- حسين- پېمخے-

ښکلے:(ښکهٔ-لے)صفت- وګورئ کښلے- ليکلے-

ښکلے توب:(ښکو-لے-توب)اسم- ښائست- حسن- ښکلا- خوبصورتي-

ښکنځا:(ښکَن-ځا)اسم- واحد- مؤنث- ښکنځل- کنځل- بدرد- زيږې- دشنام- سپورې ستغې-

ښکنځل:(ښکَن-ځَل)مصدر- (۱)بدرد ونيل- زيږې کول- کنځل- سپکول- (۲)اسم- واحد- مذکر- بدرد- زيږې- ښکنځا-

ښکنځلے:(ښکَن-ځهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښکنځل-

ښکنځن:(ښکَن-ځَن)حاصل مصدر- وګوئ ښکنځل-

ښکنځنه:(ښکَن-ځهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښکنځل-

ښکنځونکے:(ښکَن-ځون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښکنځل-

ښکنځونکو:(ښکَن-ځون-کو)صفت- کنځل مار-

ښکنول:(ښکه-نه-وَل)مصدر- کښېنول- لګول- ودرول- (عاميانه)-

ښکوم:(ښکوم)اسم- واحد- مذکر- پند- نصيحت-

ښکومے:(ښکو-مے)صفت- خېرخواه- نېک خوا-

ښکونکے:(ښکون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- کاتب- ليکونکے- کښونکے-

ښکوږے:(ښکهٔ-وږے)اسم- تحرير- ليک- ليکنه- کښنه-

ښکيني وژے:(ښکي-ني-وَه-ژے)اسم- لوې وژے- شارګ- غټ رګ-

ښکينے:(ښکي-نے)صفت- مذکر- لاندينے- ښکتنے- ښکته ته منسوب- ښکيه- ښکې- کوزنے- لرنے- کوزتنے-

ښکيه:(ښکيه)صفت- ښکې- لښکې- لاندې- کوز- لر-

ښکې:(ښکې)صفت- لاندې- ښکته- کوزه- ښکيا- ښکينے-

ښکېښودل:(ښکې-ښو-دَل)مصدر- کښېښودل- ايښودل- يښودل- زدل- ازدل- کېږدل- ايښل- کېښتل-

ښکېل:(ښکېل)صفت- دُ پښو نه تړلے- کېر- بنديوان- راايسار- بې وسه- مجبور-

ښکېلول:(ښکې-له-وَل)مصدر متعدي- دُ پښو نه تړل- کېرول- بنديوان کول- راايسارول- مجبورول- بې وسه کول-

ښکېلون:(ښکې-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلول-

ښکېلونکے:(ښکې-له-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښکېلول-

ښکېلونګ:(ښکې-له-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلول-

ښکېلونه:(ښکې-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلول-

ښکېلوهٔ:(ښکې-له-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلول-

ښکېلېدل:(ښکې-لې-دل)مصدر لازم- د پښو نه تړل کېدل- بنديوان کېدل- رااېسارېدل- ګېرېدل- مجبورېدل- بې وسه کېدل-

ښکېلېدن:(ښکې-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلېدل-

ښکېلېدنګ:(ښکې-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلېدل-

ښکېلېدنه:(ښکې-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلېدل-

ښکېلېدونکے:(ښکې-لې-دون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښکېلېدل-

ښکېلېدهٔ:(ښکې-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښکېلېدل-

ښکلونے:(ښګ-لو-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه کاڼے چې مرنکی پرې جوړولے شي-

ښل:(ښل)اسم- واحد- مذکر- اندرپایه- زینه- پوړۍ- پښانکی- پارسنګ- د لرګی زینه- اړګینه لار- ښېل-

ښلونه:(ښ-لو-نه)اسم- واحد- مؤنث- دانه- ننکی- کرمکه- کرمکی- شنخکي- شنجکی- ښنجکی-

ښمځ:(ښه-مځ)اسم- واحد- مذکر- غار- قدرتی غار- سمڅ- ګاره- سپونغاړے-

ښمر:(ښه-مر)اسم- واحد- مذکر- نفع- فائده- ګټه- سود- منافع-

ښنخرے:(ښن-خهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- تنخرے- تنزرے-

ښنخه:(ښن-خه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم دانه/ننکی- ښنخکی- ښنجکی- جمع ښنخې-

ښندکے سپے:(ښن-د-کے-سپے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښاندے سپے-

ښندل:(ښن-دل)مصدر- ښیندل- (۱)شیندل- دستل- (۲)ذرځ کول- (۳)قربانول-

ښندن:(ښن-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښندل-

ښندنګ:(ښن-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښندل-

ښندنه:(ښن-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښندل-

ښندونکے:(ښن-دون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښندل-

ښندونے:(ښن-دو-نے)فاعل/صفت- وګورئ ښندل-

ښندهٔ:(ښن-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښندل-

ښندې:(ښن-دې)اسم- جمع- مؤنث- ملنډې- چارلنډې- پیشاړې- ټوقې مسخرې-

ښنډک:(ښن-ډک)اسم- واحد- مذکر- د ملکانو یو قسم لوبه-

ښنزه:(ښن-زه)اسم- واحد- مؤنث- خنځه- ښنځه- یو خزنده-

ښنغلے:(ښن-غهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- مغانه- غمانه-

ښنک:(ښ-نک)اسم- واحد- مذکر- ښانک- خانک- د لرګی یا خاورې پرات-

ښنګ:(ښنګ)اسم- (۱)یخه او کلکه وینه- سنګ- ښنګ- (۲)هغه زمکه چې کنګل پرې پرېوتے وي-

ښنکے:(ښ-نه-کے)اسم تصغیر- وګورئ ښانک-

ښنګ:(ښنګ)اسم- واحد- مذکر- سنګ- چکه وینه- یخه وینه-

ښنګ:(ښنګ)اسم- واحد- مذکر- شنګ- ښنوش- خرې پاڼې لرونکې یوه ونه- (افغانستان)-

ښنګر:(ښنګ-کر)اسم- واحد- مذکر- ښانګر- ځانګه- (افغانستان)-

ښنګروښ:(ښنګ-روښ/ښنګ-کر-وښ)اسم- واحد- مذکر- د څپلی پیاړمه- ښنګراوښے- واښے- د څپلی غوټه-

ښنګره:(ښنګ-کهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ښنګرے-

ښنګرے:(ښنګ-کهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)سم- کیټې- پړکے- شنګرے- (۲)وګورئ ښونګرے- (۳)ښنګر- ښنګراښے- یو قسم بوټے- (۴)د جولا د تنستې یوه آله-

ښنګسر:(ښنګ-سر)اسم- واحد- مؤنث- مغانه- ښانګه- غمانه- ښنګسرے- ښنګښر- ښنغلے-

ښنګل:(ښنګ-ګل)اسم- واحد- مذکر- (۱)شنګل- شینګل- شګه او باجری لرونکے مرکب- شنګړ- شنګېړ- (۲)ښوره- شوره- ښنګله- ښره-

ښنګلي:(ښنګ-لي)صفت- مؤنث- هغه زمکه چې اُبه نهٔ راکاږي- سخته زمکه- کلکه زمکه-

ښنګلي مالګه:(ښنګ-لي-مال-ګه)اسم- واحد- مؤنث- له شورې جوړه شوې مالګه-

ښنګورۍ:(ښنګ-ګو-رۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)هغه جینۍ چې لا چا ته په نوم شوې نهٔ وي- (۲)متیزه- شینګړه- ړنه-

ښنګۍ:(ښنګ-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د پړی یا بل څهٔ ګول حلقه/ښنګړے چې د کډې بزې وغېره په څټ کښې اچولے شي- ونډر- څنګی- چنګی- غړوندے-

ښنه:(ښنه)اسم- واحد- مؤنث- ټوټه- حصه- جوړ- بند- ټکړه- عضو- اندام-

ښنه:(ښه-نه)اسم- واحد- مؤنث- پښه- ښانګه- د وروڼ دننی خوا- جمع ښنې-

ښنه:(ښنه)اسم- واحد- مؤنث- پښه پښه کونه- اندام اندام کونه- ښنه- بند بند- د ورانهٔ کونډی- د کوناټی هډوکے-

ښوانه:(ښو-وا-نه)اسم- واحد- مذکر- د ښون ونه- ښوون- شوانه- ښوانهٔ- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ ښوند-

ښوانهٔ:(ښو-وا-نهٔ)اسم- واحد- مذکر- د زېتون ونه- ښوانه- وګورئ ښوند-

ښوبه:(ښو-به)اسم- مؤنث- د اُبو شیردان- شیردمن- (افغانستان)-

ښوبے:(ښو-بے)صفت- مذکر- بې وسلې- غېر مسلح- بې اسلحې (سړے)-

ښوپه:(ښو-په)صفت- (۱)ناسنته- چې سنت شوے نهٔ وي- (۲)جاهل- شوپه- شوپړ-

ښوځل:(ښو-ځل)مصدر- (۱)سورے کول- سورے ایستل- تېځل- (۲)شلول-

ښوځن:(ښو-ځن)حاصل مصدر- وګورئ ښوځل-

ښوځنګ:(ښو-ځنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښوځل-

ښوځنه:(ښو-ځهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښوځل-

ښوځني:(ښو-ځه-ني)اسم- واحد- مؤنث- برمه- تېځي-

ښوڅونکے:(ښو-څون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښوڅل-
ښوڅه:(ښو-څه)اسم- واحد- مؤنث- سورے- سوراخ- سوړه-
ښوڅه:(ښو-څه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ګرمی لۀ کبله پۀ بدن راختلې ننکی- ګرمکه- (۲- صفت)بې صبره- بې حوصلې-
ښودل:(ښو-دل)مصدر- ښیل- ښول- پۀ ګته کول- څرګندول- ښکاره کول-
ښودن:(ښو-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښودل-
ښودنګ:(ښو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښودل-
ښودنه:(ښو-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښودل-
ښودونکے:(ښو-دون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښودل-
ښوده:(ښو-ده)اسم- ښودنه- ښینه- ښووه- ښیه-
ښودۀ:(ښو-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښودل-
ښور:(ښور)اسم- واحد- مذکر- (۱)مېږتون- ړومبکے- د مېږو د وسېدو ځاۍ- د مچو ړومبک-
ښور:(ښور)اسم- حرکت- ړق- خوزېدنه- شوه کېدنه- هاهو- هیاهو-
ښور:(ښور)اسم- (۱)سلطنت- باچائی- (۲)لویه قلعه- شاهی قلعه-
ښورکے:(ښو-ره-کے)اسم- وګورئ ښورے- تورښورے- تروکی- تره وکی- سورغوړے-
ښورل:(ښو-رل)مصدر- پۀ ښویه تلل-
ښورماغه:(ښور-ما-غه)صفت- ښوره زمکه- ښورنه-
ښورن:(ښو-رن)حاصل مصدر- وګورئ ښورل-
ښورند:(ښو-رند)صفت- خوزېدونکے- متحرک-
ښورنګ:(ښو-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښورل-
ښورنه:(ښو-رۀ-نه)صفت- مؤنث- ښوره- ښوره زمکه- ښورماغه-
ښورنه:(ښو-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښورل-
ښوروا:(ښور-وا)اسم- واحد- مؤنث- شوروا- شوربا- جمع ښورواګانې-
ښوروَل:(ښو-ره-وَل)مصدر متعدی- خوزول- حرکت ورکول- رپول- خوځول- (۲)خپرول- (۳)شیندل-
ښورولے:(ښو-ره-وۀ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښورول-
ښورون:(ښو-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښورول-
ښورونکے:(ښو-رون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښورل-
ښورونکے:(ښو-ره-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښورول-
ښورونګ:(ښو-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښورول-
ښورونه:(ښو-ره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښورول-
ښوروۀ:(ښو-ره-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښورول-
ښوره:(ښو-ره)اسم صفت- هغه زمکه چې فصل نۀ کوی- زیمناکه زمکه- مالګینه زمکه- (۲)هغه سره چې د خاورې سره ګډه شوی وی- (۳)شوه-
ښوره ناک:(ښو-ره-ناک)صفت- ښورې وهلے- مالګین-
ښوری:(ښو-ری)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ځنګلی بوټے-

ښونکے:(ښونک-کے)صفت- ګډے- هغه چې پښه ئې لړه ګډه وی-
ښونه:(ښ-و-نه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ښوند-
ښووَل:(ښو-وَل)مصدر- ښودل- ښیَل- تعلیم ورکول-
ښوون:(ښو-ون)اسم- مذکر- د زېتون ونه- ښوند-
ښوون:(ښو-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښووَل-
ښوونځاۍ:(ښو-ون-ځاۍ)اسم- واحد- مذکر- مدرسه- مکتب-
ښوونکې:(ښو-ون-کې)صفت- مؤنث- استاذه- ښودونکې- (افغانستان)-
ښوونکے:(ښو-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښووَل-
ښوونګ:(ښو-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښووَل-
ښوونه:(ښو-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښووَل-
ښوونه روزنه:(ښو-وۀ-نه-رو-زۀ-نه)اسم- تعلیم و تربیت-
ښوونی:(ښه-وو-نی)اسم- واحد- مؤنث- مسواکه ګته- د ګتې او منځې ګتې تر منځه ګته-
ښوهول:(ښو-هه-وَل)مصدر متعدی- دوکه کول- غلطول- غولول- تېر باسل- تېر ایستل- دروهل- ښویول-
ښوهولے:(ښو-هه-وۀ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښوهول-
ښوهون:(ښو-هه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښوهول-
ښوهونکے:(ښو-هه-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښوهول-
ښوهونګ:(ښو-هه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښوهول-
ښوهونه:(ښو-هه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښوهول-
ښوهوۀ:(ښو-هه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښوهول-
ښوهېدل:(ښو-هې-دل)مصدر لازم- دوکه کېدل- غلطېدل- غولېدل- تېروتل- ښونېدل- دروهېدل-
ښوهېدن:(ښو-هې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښوهېدل-
ښوهېدنګ:(ښو-هې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښوهېدل-
ښوهېدنه:(ښو-هې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښوهېدل-
ښوهېدونکے:(ښو-هې-دون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښوهېدل-
ښوهېدۀ:(ښو-هې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښوهېدل-
ښونېدانے:(ښوئ-دا-نے)صفت- مذکر- مهین ځاۍ- هغه ځاۍ چې سړے پرې ښونېږی- ښونېدونکے ځاۍ-
ښونېدل:(ښوه-ئ-دل)مصدر- وګورئ ښوېدل-
ښویکی:(ښوی-کی)اسم- واحد- مؤنث- د چړچړک یو قسم-
ښویکے:(ښوی-کے)صفت- مذکر- مکار- دوکه باز- چالاک- ښوے- سړے-
ښویند:(ښوه-یند)صفت- مذکر- ښونېدونکے- ښوئنده ځاۍ- ښوے- ښویه- صاف- لشم- ښویندے-
ښویندے:(ښوه-ین-دے)صفت- مهین- چې سړے پرې ښونېږی- وګورئ ښویندے-

ئ (ځی-رل)، ې (هې-ره-وَل)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ښوی والے:(ښوی-وا-لے)اسم- (۱)خپله مرضی کونه- (۲)ښوے توب- لشم توب- (۲)چالاکی- لشمي-

ښويول:(ښوه-يه-ؤل)مصدر متعدی- (۱)الغزول- يو څيز يا بنيادم له پهٔ زمکه يا بل څيز پورې پهٔ لګېدلی حالت کښې حرکت ورکول- پهٔ لوند يا روغنی ځايْ دَ پښې بې قابو کول- بې حوصلې کول- وارخطا کول- (دَ زړهٔ يا پښو سره)- (۲)ګمراه کول- بې لارې کول- دوکه کول-

ښويولے:(ښوه-يه-وۀ-لے)اسم مفعول صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښويول-

ښويون:(ښوه-يه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښويول-

ښويونکے:(ښوه-يه-وون-کے)اسم فاعل صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښويول-

ښويونګ:(ښوه-يه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښويول-

ښويونه:(ښوه-يه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښويول-

ښويوۀ:(ښوه-يه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښويول-

ښويه:(ښوه-يه)اسم- پهٔ هواره سره ونيښه- روانی سره- (۲)صفت- مهين- اوار- وګورئ ښوے-

ښويه ښالاکه:(ښو-يه-ښا-لا-که)صفت- مؤنث- هغه دېوال چې ډېر مضبوط، وُچت او مهين وی-

ښوې تېرول:(ښه-وې-تې-ره-ول)مصدر- وګورئ غړچول-

ښوېدل:(ښوې-دل)مصدر لازم- ښوئېدل- (۱)الغزېدل- دَ پښو لهٔ خپله ځايه پهٔ آسانی سره حرکت کول او دَ هغې پهٔ نتيجه کښې راپرېوتل (خاص طور سره حادثاتی طريقې باندې)- دَ ابو يا بل کوم غوړ څيز پهٔ وجه غېر ارادی طور دَ پښې نهٔ ټينګېدل- (۲)پهٔ غلا لهٔ يوهٔ ځايه تلل- کشېدل- (۲)ګمراه کېدل- بې لارې کېدل-

ښوېدانکے:(ښوې-دان-کے)اسم- هغه ځايْ چې پښه پرې ښوئيږی-

ښوېدلے:(ښوی-دۀ-لے)اسم مفعول صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښوېدل-

ښوېدن:(ښوې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښوېدل-

ښوېدنګ:(ښوې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښوېدل-

ښوېدنه:(ښوې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښوېدل-

ښوېدونکے:(ښوې-دون-کے)اسم فاعل صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښوېدل-

ښوېدۀ:(ښوې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښوېدل-

ښوے:(ښوے)صفت- (۱)خوشامدګر- چاپلوس- دوه رنګے- دوه مخے- ښوے (سړے)- (۲- اسم)راشپېل- راشبېل- (۲)ډډګے-

ښوے سړے:(ښوے-سه-ړے)صفت- ښوی پی- خپله مرضی کونکے سړے- ښوے-

ښه:(ښه)صفت- مؤنث- دَ ښهٔ مؤنث-

ښه:(ښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اقرار- قول- لوظ- وعده- (۲- حرف)او- ټيک-

ښه بده:(ښه-به-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غم ښادی- راشه درشه- تګ راتګ- (۲)الوړه ژوره- سړه توده- دَ زمانې انقلاب-

ښه راغلې:(ښه-راغ-لې)کلمه- پخېر راغلې- ستړے مهٔ شې-

ښه راغلے:(ښه-راغ-لے)اسم- هرکلے- ستړی مشی-

ښه نولې:(ښه-نو-لې)اسم- واحد- مؤنث- يوه خوراکی دانه چې پهٔ ګټه راخيژی-

ښهٔ:(ښهٔ)صفت- واحد/جمع- مذکر- (۱)نېکی خوښونکے- نېکی پسند- نېک- (۲)اسم- ښېګړه- نېکی کونه-

ښهٔ بد:(ښهٔ-بد)اسم- خېر و شر- (۱)نېکی بدی- (۲)مال اسباب- مال متاع-

ښهٔ تر ښهٔ:(ښهٔ-تر-ښهٔ)اسم- ډېر ښهٔ- نسبتاً ښهٔ-

ښهٔ تره:(ښهٔ-ته-ره)متعلق فعل- پهٔ ښهٔ شان سره- ښهٔ طريقې سره-

ښهٔ توب:(ښهٔ-توب)اسم- ښهٔ والے- خوبی- نېکی- شرافت- ښهٔ خویٔ-

ښهٔ توښه:(ښهٔ-تو-ښه)اسم- ښهٔ سامان کنايه ده دَ ښهٔ عمل او اولاد نه-

ښهٔ خوانی:(ښهٔ-خوا-نی)اسم مرکب- بهادری- خوانمردی- سړيتوب- نرتوب- خوش اخلاقي-

ښهٔ چاروکے:(ښهٔ-چا-رو-کے)صفت- ښهٔ کار کونکے- ښهٔ لار ښودونکے-

ښهٔ چاره:(ښهٔ-چا-ره)اسم- واحد- مؤنث- ښهٔ کار- جمع ښهٔ چارې-

ښهٔ چارے:(ښهٔ-چا-رے)صفت- ښه چاروکے- نېک عمله- نېک-

ښهٔ چارے:(ښهٔ-چا-رے)کلمه- ستړی مشی- پخېر راغلے- دَ خېر خواهی اظهار-

ښهٔ زړے:(ښهٔ-زۀ-ړے)صفت- رحمدل- لویٔ زړهٔ والا- دَ ښو اخلاقو خاوند- خوش طبع- زړهٔ سواندے-

ښهٔ ښندنه:(ښهٔ-ښن-دۀ-نه)اسم- خېرات- خرچ کونه-

ښه مرغ:(ښهٔ-مرغ)صفت- خوش نصيبه- نصيب خور- نېک فاله- ښه مرغے- خوش بخته- نېک بخته- نېک مرغه-

ښهٔ مرغے:(ښهٔ-مر-غے)صفت- وګورئ ښهٔ مرغ-

ښهٔ مرغی:(ښهٔ-مر-غی)اسم- نېک نصيبی- نېک فالی- خوش قسمتی- نېک بختی- نېک مرغی-

ښها:(ښه-ها)اسم- نعمت- بخښنه- بخشش-

ښهانه:(ښه-ها-نه)اسم- واحد- مؤنث- ښېګړه- ښېګڼه-

ښهر:(ښه-هر ښهر)اسم- واحد- مذکر- ښار- ښاريه-

ښهل:(ښهٔ-هل)مصدر- عاق کول- محروم کول- وېستل- ختمول-

ښهلے:(ښه-هۀ-لے)اسم صفت مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ښهل-

ښهن:(ښهٔ-هن)حاصل مصدر- وګورئ ښهل-

ښهنګ:(ښهٔ-هنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښهل-

ښهنه:(ښهٔ-هۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښهل-

ښهونکے:(ښهٔ-هون-کے)اسم فاعل صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښهل-

ښهۀ:(ښهٔ-هۀ)حاصل مصدر- وګورئ ښهل-

ښيالمې:(ښ-يال-مې)اسم- جمع- مؤنث- دَ خلې لاړې- لاړې- لياړې- ناړې- لاړې- دَ خلې لعاب-

ښيتا:(ښی-تا)اسم- برخېره مال- ځرګنده مال-

ښيخ:(ښيخ)اسم- واحد- مذکر- زمر لړونکے غنه- غنډل- لړمی- کوکی-

کوکیی-

ښیڅه:(ښي-څه)اسم- مؤنث- غرنیز سابهٔ- شړے- نرغوټ- خرښخے-

ښیښه:(ښي-ښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شیشه- (۲)یو قسم واښهٔ (شینکے) چې پهٔ واورینو علاقو کښې کیږی- جمع ښیښې-

ښیل:(ښه-یل)مصدر- ښودل- ښول- ښایل- پهٔ ګُته کول-

ښیلے:(ښه-یهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښیل-

ښیم:(ښیم)صفت- دٔ زنګ یا خیری لهٔ کبله نښتے- جام- نښتے- جامد-

ښیمی:(ښه-یه-می)اسم- معیار- دٔ اندازه کولو معیار-

ښین:(ښه-ین)حاصل مصدر- وګورئ ښیل-

ښینګ:(ښه-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ ښیل-

ښینه:(ښه-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښیل-

ښینه:(ښي-نه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ ښځې خور- ښینې-

ښینې:(ښي-نې)اسم- واحد- مؤنث- دٔ ښځې خور- ښینه-

ښیول:(ښه-یه-ول)مصدر- ښویول- تېرول- مړل-

ښیون:(ښه-یه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښیول-

ښیونکی:(ښه-یون-کي)اسم صفت- مؤنث- استاذه- معلمه- (افغانستان)-

ښیونکے:(ښه-یه-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښیول-

ښیونکے:(ښه-یون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښیل-

ښیونګ:(ښه-یه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښیول-

ښیونه:(ښه-یه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښیول-

ښیونے:(ښه-یو-نے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښیول-

ښیوهٔ:(ښه-یه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښیول-

ښېځل:(ښې-ځل)مصدر- سېزل- سوزول- (افغانستان)-

ښېرا:(ښې-را)اسم- واحد- مؤنث- ازار- بددعا- سپېره خله خوخونه- جمع ښېرې-

ښېراز:(ښے-راز)صفت- مذکر- ښېرازه- (۱)تازه- شاداب- سرسبز- (۲)څورب- څرب- صحت مند- (۲)خوشحال- اباد-

ښېرازتوب:(ښے-راز-توب)اسم- مذکر- (۱)تازه والے- تازګی- ښېرازی- شادابی- (۲)څوربوالے- څربوالی- مستی- (۲)ترقی- خوشحالی-

ښېرازتیا:(ښے-راز-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ ښېرازتوب-

ښېرازول:(ښے-را-زه-ول)مصدر متعدی- (۱)شادابول- تازه کول- سرسبزه کول- ترزتازه کول- (۲)څربول- غټول- (۲)ابادول- خوشحالول- وده ورکول-

ښېرازون:(ښے-را-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازول-

ښېرازونکے:(ښے-را-زه-وون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښېرازول-

ښېرازونګ:(ښے-را-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازول-

ښېرازونه:(ښے-را-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازول-

ښېرازوهٔ:(ښے-را-زه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازول-

ښېرازه:(ښے-را-زه)صفت- وګورئ ښېراز-

ښېرازی:(ښے-را-زی)اسم- مؤنث- (۱)تازګی- شادابی- سرسبزی- (۲)خوشحالي- ترقي- ابادئ- (۲)څُربوالے- غټوالے-

ښېرازېدل:(ښے-را-زې-دل)مصدر لازم- (۱)تازه کېدل- شادابه کېدل- سرسبزه کېدل- شین کېدل- (۲)څربېدل- غټېدل- (۲)ابادېدل- خوشحالېدل- ترقی کېدل- زده کول-

ښېرازېدن:(ښے-را-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازېدل-

ښېرازېدنګ:(ښے-را-زې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازېدل-

ښېرازېدنه:(ښے-را-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازېدل-

ښېرازېدونکے:(ښے-را-زې-دون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښېرازېدل-

ښېرازېدهٔ:(ښے-را-زې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ښېرازېدل-

ښېرازے:(ښے-را-زے)اسم- واحد- مذکر- دٔ قلعه نه چاپېر بهرنے دېوال- دٔ قلعه نه راتاؤ دېوال-

ښېرون:(ښې-رون)اسم- واحد- مذکر- دٔ ښون پهٔ شان یوه غرنیزه وُنه- ښېر وُنه-

ښېرونه:(ښېر-وهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ښېرون-

ښېروه:(ښېر-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ښېرون-

ښېره:(ښې-ره)اسم- واحد- مؤنث- بددعا- ازار- ښېرا-

ښېرې ازار:(ښې-رې-آ-زار)اسم مرکب- ښېرې- بدرد- ګوښ ازار- سر سرتورونه- بددعا-

ښېګړه:(ښې-ګهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- نېکی- فائده- نفع ورکونه- دٔ چا سره ښهٔ کونه- احسان- درښتن-

ښېګنیوال:(ښې-ګڼ-وال)صفت- فائده من- (افغانستان)-

ښېګنه:(ښې-ګهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ښېګړه-

ښېلی:(ښې-لی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- عاقه شوې- بدفعله- کنجره- بدعمله-

ښېیل:(ښې-یل)مصدر- ښودل- ښوول- ښول-

ښېین:(ښې-ین)حاصل مصدر- وګورئ ښېیل-

ښېینګ(ښې-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ ښېیل-

ښېینه:(ښې-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ښېیل-

ښېیونکے:(ښې-یون-کے)اسم فاعل/صفت- واحد- مذکر- وګورئ ښېیل-

ښے:(ښے)اسم- واحد- مذکر- دٔ کین(کس) ضد-

ښے لاس:(ښے-لاس)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٔ کس لاس ضد- سم لاس- (۲)مددګار- ملګرے- کلک ملګرے-

ص:(صاد)دَ پښتو دَ حروفِ تهجي دَ پنځى ځليريشتم حرف چې دَ ابجدو پهٔ حساب ۸۰ دے۔

صابانه:(صا-با-نه)اسمِ صفت- وَګوریٔ صاحبانه۔

صابانهٔ:(صا-با-نهٔ)اسم- واحد- مذکر- دَ "پهٔ" یا دَ "دَ" دَ راتلو پهٔ وجه دَ صابون نه صابانهٔ- لکه دَ بېلتون نه بېلتانهٔ۔

صابر:(صا-بر)اسم صفت- واحد- مذکر- صبرناک- دَ صبر څښتن- دَ حارص متضاد- صبر کونکے- جمع صابران۔

صابون:(صا-بون)اسم- واحد- مذکر- دَ وازدې یا دَ تېلو او نورو کېمیایٔ مرکباتو پهٔ یوځایٔ کولو یو مرکب چې دَ بدن او جامو دوارو دَ صفایی دَ پاره پکارولے شي۔

صابون دانه:(صا-بون-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ صابون ابشودو ونے۔

صابوني:(صا-بو-ني)اسم- واحد- مؤنث- مغه توده او نرمه کوره چې دَ کړی نه اترې ته دَ راغرخولو پهٔ وخت ښهٔ وېکولے شي او بیا دَ یو خاص شکل ورکولو نه پس او دَ وچې مېوې دَ کېولو نه پس دَ خوند دَ پاره خورلے شي۔

صاحب:(صا-حب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ملګرے- اشنا- دوست- صېب- مشر- سردار- حاکم- (۲)دَ تعظیم کلمه چې دَ خطاب پهٔ وخت دَ نوم سره لګولے شي- جمع صاحبان۔

صاحب:(صا-حب)صفت- واحد- مذکر- لرونکے- خاوند- قابض- لکه صاحب اخلاق۔

صاحبانه:(صا-ح-با-نه)اسم صفت- دَ صاحب سره متعلق- دَ صاحب پهٔ شان۔

صاحب حق:(صا-ح-ب-حق)اسم صفت- مرکب- مذکر- دَ حق څښتن- صابیق- مُلا- استاذ- دَ حق خاوند۔

صاحب منصب:(صا-ح-ب-من-صب)اسم صفت- مرکب- مذکر- دَ لوئ عهدې خاوند- مغه څوک چې پهٔ لویه عهده باندې کار کوي۔

صاحبي:(صا-ح-بي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خاوندي- مالکي- آقائي- (۲)دَ انګورو یو قسم۔

صاحت:(صا-حت)اسم- واحد- مذکر- حسن- ښکلا- ښایسټ- زیبائي- سپین والے- ښائست- ښکلے والے۔

صادر:(صا-در)اسم صفت- واحد- مذکر- جاري- جاري کړے شوے- نافذ- استولے شوے- لېږلے شوے۔

صادرات:(صا-د-رات)اسم- واحد- مذکر- مغه تجارتي سامان چې دَ یو ملک نه بل ته استولے شي- دَ ملک نه بهر وتونکے څیز یا څیزونه۔

صادراتي:(صا-د-را-تي)صفت نسبتي- دَ ملک نه بهر استونکے- دَ ملک نه وتونکے- دَ صادرات سره نسبت لرونکے۔

صادرول:(صا-د-ره-ول)مصدر متعدي- لېږل- استول- نافذول۔

صادرېدل:(صا-د-رې-دل)مصدر لازم- لېږل کېدل- استول کېدل۔

صادق:(صا-دق)صفت- واحد- مذکر- رښتونے- راستباز- رښتونے۔

صادقانه:(صا-د-قا-نه)صفت نسبتي- صادق سره متعلق۔

صاعقه:(صا-ع-قه)اسم- واحد- مؤنث- تندر- اسماني بجلي- ټکه- خرسه۔

صاف:(صاف)صفت- واحد- مذکر- صفا- سوتره۔

صاف شکن:(صاف-ش-کن)اسم مرکب- مذکر- غربین- غرابین- یو پخوانے ټوپک- (افغانستان)۔

صافول:(صا-ف-ول)مصدر متعدي- پاکول- صفا کول- سوتره کول۔

صافي:(صا-في)اسم- واحد- مؤنث- دَ صفایي کپړه- مغه کپړه چې صفائي پرې کولے شي- جاړن۔

صافېدل:(صا-فې-دل)مصدر لازم- پاکیزه کېدل- پاکېدل- صفا کېدل۔

صالح:(صا-لح)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نېک- پرهېزګار- ښهٔ سړے- دَ یو پیغمبر نوم مبارک۔

صامت:(صا-مت)اسم صفت- واحد- مذکر- خاموش- چپ چاپ- چپ- غلے- پټ خلے- غېر ناطق۔

صانع:(صا-نع)صفت- واحد- مذکر- کاریګر- جوړونکے۔

صائب:(صا-ئب)اسم صفت- واحد- مذکر- محکم- نېغ- رښتونے- نېغ تلونکے- رسېدونکے۔

صائم:(صا-ئم)اسم صفت- واحد- مذکر- روژه ساتونکے- روژه دار- روژه پهٔ خُلهٔ- مغه څوک چې روژه يې نیولې وي۔

صبا:(صَ-با)اسم- واحد- مذکر-(۱) راتلونکې ورځ- سبا- (۲)سحر- (۲)بادِصبا- نسیم۔

صبا بېګا:(صَ-با-بې-ګا)اسم مرکب- سبا بېګا- سحر نماښام- شپه او ورځ- مر وخت۔

صباح:(صَ-باح)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)سحر- (۲)ښکلے- ښائسته۔

صباحت:(صَ-با-حت)اسم- واحد- مذکر- ښائست- حُسن۔

صباح مردان:(صَ-باح-مر-دان)اسم مرکب- (۱) سحر مردان- ساری مردان- سار مردان- (۲)سحر سبا- سحر وختي- سوړی سار۔

صباحي:(صَ-با-حي)اسم- واحد- مذکر- سبائي- سار سبا- سحر سبا- سحر وختي- صباح مردان- دَ سحر وخت۔

صباحینے:(صَ-با-حي-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- سبانے۔

صباغ:(صَ-باغ)اسم صفت- واحد- مذکر- رنګرېز- رنګ ورکونکے۔

صباغت:(صَ-با-غت)اسم- واحد- مذکر- رنګرېزي۔

صبانارے:(صَ-با-نا-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- سبانارے- (۲)سحرني خوراکه- ناشته۔

صباون:(صَ-با-وون)اسم- واحد- مذکر- دَ سبا علامه- دَ سحر مغه رڼا چې دَ سحر پیغام راوړي- سباوون۔

صبح:(صَ-بح/صُبح)اسم- واحد- مذکر- سحر- سبا۔

صبحدم:(صَ-بح-دم)اسم- واحد- مذکر- دَ نمر دَ راختو نه مخکښې وخت- سباوون- دَ سحر وخت- سباګون۔

صبح صادق:(صُبح-صا-دق)اسم مرکب- رڼې ګهيځ- سپين ګهيځ- سپين سار- ملابانګ وخت- د سحر نه مخکښې چې رڼا خوره نه وي-

صبح کاذب:(صُب-ح-کا-ذب)اسم مرکب- واحد- مذکر- سوړ ګهيځ- سپېرهٔ ګهيځ- دَ صبح صادق ضد-

صبر:(صَ-بر)اسم- واحد- مذکر- (۱)زغم- برداشت- (۲)سکته- ودرېدنه-

صبردارو:(صَ-بر-دا-رُو)اسم مرکب- مُصبر- هغه تراخهٔ دارو چې ماشومان پرې دَتی نه اړولے شي-

صبرسقوطری:(صَ-بر-س-قوط-ری)اسم مرکب- مؤنث- يوه ترخه دوائي-

صبرناک:(صَ-بر-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- صابر- بردبار- حليم طبع- دروند خوږ-

صبرول:(صَب-ره-وَل)مصدر متعدی- (۱)منع کول- ودرول- ايسارول- (۲)تسلي ورکول- دلاسه ورکول-

صبرون:(صَب-ره-وَن)حاصل مصدر- وګورئ صبرول-

صبرونکے:(صَب-ره-وَن-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع صبرونکي مؤنث صبرونکې- وګورئ صبرول-

صبرونګ:(صَب-ره-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ صبرول-

صبرونه:(صَب-ره-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ صبرول-

صبرېدل:(صَب-رې-دل)مصدر لازم- (۱)تسلي کېدل- صبر کېدل- برداشت کېدل- (۲)ودرېدل- منع کېدل-

صبرېدن:(صَب-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ صبرېدل-

صبرېدنګ:(صَب-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ صبرېدل-

صبرېدنه:(صَب-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ صبرېدل-

صبرېدونکے:(صَب-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع صبرېدونکي- مؤنث صبرېدونکې- وګورئ صبرېدل-

صبوحی:(صَ-بو-حی)اسم- واحد- مذکر- دَ سحر شراب-

صبور:(صَ-بور)اسم صفت- واحد- مذکر- صابر- صبر کونکے-

صبوری:(صَ-بو-ری)اسم- واحد- مؤنث- صبر- برداشت- تحمل-

صبيح:(صَ-بيح)اسم صفت- واحد- مذکر- شائسته- ښکلے-

صحابه:(صَ-حا-به)اسم- جمع- مذکر- دَ محمد صلی الله عليه وسلم ملګری- اَصحاب-

صحابی:(صَ-حا-بی)اسم- واحد- مذکر- دَ "صحابه" واحد- وګورئ صحابه-

صحاح سته:(صَ-حا-ح-ست-ته)اسم مرکب- دَ احاديثو شپږ معتبر کتابونه- بُخاری شريف، مسلم شريف، ترمذی شريف، ابوداود، ابن ماجه او نسائی-

صحاف:(صَ-حاف)اسم- واحد- مذکر- کتاب ګنډونکے- جلدساز- بائنډر- کتاب پلور-

صحافت:(صَ-حا-فت)اسم- واحد- مذکر- دَ اخبار يا رسالې سره متعلق کار- دَ صحافی کار-

صحافی:(صَ-حا-فی)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ صحافت کار کونکے-

صحبت:(صُح-بَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)مجلس- مُبلس- ګپ شپ- خبرې اترې- ملګرتيا- دوستي- (۲)کوروالے- هم بستری- (۳)پهٔ شريکه پېښه جوړونه- دَ ږېږوکسانو پهٔ يوځائ سره روټي خوړنه-

صحت:(صِ-حَت)اسم- واحد- مذکر- روغوالے- جوړوالے- تندرستي- روغه سېه-روغ صورت-

صحتمند:(صِ-حَت-مَند)اسم صفت- واحد- مذکر- روغ- جوړ- ساز- ټيک- تندرُست-

صحرا:(صَح-را)اسم- واحد- مؤنث- بېديا- دشت- بيابان- شاړه- ډاګه-

صحرانشين:(صَح-را-نه-شين)اسم صفت- واحد- مذکر- صحرائی- دَ صحرا وَسېدونکے- بېديائی-

صحرائی:(صَح-را-ئی)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ صحرا وَسېدونکے- بېديائی- دَ بېديا وَسېدونکے-

صحن:(صَ-حَن)اسم- واحد- مذکر- انګڼ- غولے-

صحو:(صَ-حو)اسم- واحد- مذکر- هوښيارتيا- هُښيارتيا-

صحيح:(صَ-حيح)اسم صفت- واحد- مذکر-(۱)سم- سم دم- بې غلطی- سالم- (۲)وګورئ درست-

صحيح سلامت:(صَ-حی-س-لا-مَت)اسم صفت- مرکب- روغ رمټ- تکړه تيار- ټيک ټاک- پوره پهٔ پوره- سالم- مکمل- پهٔ خير خيريت-

صحيفه:(صَ-حی-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کتاب ليکلې شوې صفحه- (۲)اخبار- خط-

صد:(صد)اسم عدد- سل- ۱۰۰-

صدا:(صَ-دا)اسم- واحد- مذکر- اواز- نعره- ناره- غږ- ږغ-

صدارت:(صَ-دا-رت)اسم- واحد- مذکر- مشری- بزرګی- لوئ والے-

صدارتی:(صَ-دا-ر-تی)صفت نسبتی- دَ صدارت سره منسوب-

صداع:(صَ-داع)اسم- واحد- مذکر- سرخوږے- دَ سر درد-

صداقت:(صَ-دا-قت)اسم- واحد- مذکر- اخلاص- رښتيا- رښتنولي- رېشتينولي- رېښتينتوب- رېشتينتوب-

صدبرګ:(صَد-بَرګ)اسم- مذکر- سل پاڼے- يو قسم ګل چې سل پاڼې لري-

صدچندان:(صَد-چن-دان)اسم صفت- مرکب- ډېر- ډېر زيات-

صدر:(صَ-در)اسم- واحد- مذکر- (۱)سينه- (۲)سردار- بزرګ- مشر- دَ ملک ائينی مشر- (۳)مينځ- (۴)اوچتوالے- (۵)دارالخلافه- دَ فوج دَ وَسېدوځائ-

صدراعظم:(صد-رې-اع-ظم)اسم صفت- مرکب- وزيراعظم- مختاراعظم- ستر صدر-

صدری:(صد-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)واسکټ- بې لستوڼو لنډ کوټ- سينه بند- (۲)دَ صدر پيشه-

صدف:(صَ-دف)اسم- واحد- مذکر- (۱)سيپی- سيپ- کَنجکه- (۲)يو اوچت ځائ- دَ ډېوال يا دَ غرهٔ څوکه يا دَ ټولونه اوچت ځائ- (۲)هغه پياله چې شراب پکښې څښلے شي-

صدق:(ص-دق/صدق)اسم- واحد- مذکر- ریښتیا- رښتیا- رېښتیا- رښتیا- خلوص-

صدقه:(ص-دَ-قه)اسم- واحد- مؤنث- خیرات- دَ راتلونکې بلا دَ مخ نیوی دَ پاره خیرات کونه- جمع صدقې-

صدمه:(صد-مه)اسم- واحد- مؤنث- حادثه- دُک- دوک- واقعه- چا ته غم رسېدنه- جمع صدمې-

صدور:(صُ-دُور)اسم- جمع- مذکر- وګورئ صدر-

صدیق:(صِ-دیق)اسمِ صفت- واحد- مذکر- رښتونے- رېښتونے- ډېر رېښتونے-

صدی:(ص-دی)اسم- واحد- مؤنث- سل کاله- پېړۍ- جمع صدی-

صراحت:(صَ-را-حَت)اسم- واحد- مذکر- ظاهرونه- وضاحت کونه- ښکاره کونه- څرګندتیا-

صراحتاً:(صَ-را-ح-تَن)متعلق فعل- په تفصیل سره- پهٔ ازاده طریقې سره-

صراحی:(صَ-را-حی)اسم- واحد- مؤنث-(۱)یو قسم کوزه چې غاړه یې وَړده او خلهٔ یې تنګه وی او وېخ یې غټه او پلن وی خو څخوړے یې نهٔ وی- (۲)وَړد او ښائسته-

صراط:(ص-راط)اسم- واحد- مذکر- (۱)لاره- لیاره- (۲)دَ دوزخ دَ پاسه پول-

صراف:(صَ-راف)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)فضول خرڅه- فضول خرچه- ډېر خرڅ کوُنکے- (۲)دَ زرو سوداګر- دَ سرهٔ زر کاروبار کونکے- (۳)دَ کرنسی کاروبار کوُنکے-

صرافت:(صَ-را-فت)اسم- واحد- مذکر- کره کونه- ټنګونه- صحیح کونه-

صرصر:(صَر-صَر)اسم- واحد- مذکر- تېزه او ګرمه هوا- سیلی-

صرع:(ص-رَع)اسم- واحد- مذکر- مېرګی- یو رنځ چې بنیادم لږ ساعت له بې خوده شی او غټه پرې راشی-

صرف:(ص-رَف)متعلق فعل- خالی- فقط- ایله- خالص- مخلص- بس- مخص- تش- یواځې-

صرف:(صرف)اسم- واحد- مذکر- (۱)خرچ کونه- لګونه- (۲)بدلونه- الټه کونه- (۳)حادثه-

صرف:(صَرف)اسم- واحد- مذکر- دَ نحوې او صرف علم- ګرامری علم- دَ ګرامر علم- دَ حروفو دَ حرکاتوَ دَ ادل بدل او اړونې رااړونې معلومولو علم- ګرامری ګردان-

صرفه:(صَر-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کم خرڅ کونه- (۲)کفایت- (۳)ایله- احتیاط- دریغ-

صریح:(ص-ریح)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ظاهر- ښکاره- واضح- څرګند- روښانه-

صریحاً:(ص-ری-حَن)متعلق فعل- پهٔ ښکاره- پهٔ ظاهره-

صریر:(ص-ریر)اسمِ صوت- دَ قلم دَ لیکلو اواز- دَ پښو اواز- دَ دروازې دَ بندولو لرې کولو اواز-

صعب:(صَعب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- سخت- مشکل- درونډ-

صعوبت:(صَ-عو-بَت)اسم- واحد- مذکر- سختی- مصیبت- سختهٔ-

صعود:(ص-عُود)اسم- واحد- مذکر- پورته ختنه- دَ حساب دَ علم دَ یوې قاعدې نوم-

صعودی:(صَ-عُو-دی)صفت نسبتی- وګورئ صعود- دَ حساب هغه قاعده چې ترتیب یې پهٔ پورته خېژی-

صغرا:(صُغ-را)اسم صفت- مؤنث- (۱)وړه- (۲)دَ ټولونه وړوکے څیز- (۲- اسم)دَ اهلِ منطق پهٔ اصطلاح کښې دَ شکل وړومبی قضیه-

صغیر:(ص-غیر)اسم صفت- واحد- مذکر- وړوکے- وړوکے هلک- مؤنث صغیره-

صف:(صف)اسم- واحد- مذکر- قطار- ترتیب- پره-

صفا:(ص-فا)اسم صفت- واحد- مؤنث- پاکیزه- پاک- سپېځلے- اوار-

صفا چټ:(ص-فا-چَټ)اسمِ صفت- مرکب- (۱)چټ صفا- بېخی صفا- سپین صفا- (۲)بېخی ختم- چورلټ ختم-

صفا سوتره:(ص-فا-سُوت-ره)اسمِ صفت- مرکب- پاک صاف- سپین صفا- پاک- بېخی پاک- سپېځلے- روڼ-

صفا صفا:(ص-فا-ص-فا)اسمِ صفت- واحد- مذکر- پاک پاک- بېخی صفا- سپین صفا- پاک ساک- پاک صاف- بالکل پاک-

صفائی:(ص-فا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پاکوالے- پاکی- پاکیزګی- سپېځلتوب- (۲)دلیل پېش کونه-

صفبندی:(صَف-بَن-دی)اسم مرکب- ترتیب- قطار جوړونه- صفونو له ترتیب ورکونه-

صفت:(ص-فَت)اسم- واحد- مذکر- تعریف- خوبی- ستائینه- خاصیت- خصوصیت-

صفت تړه:(ص-فَت-ت-ړه)اسمِ مرکب- پرابسته- پاربسته-

صفتی:(ص-ف-تی)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ تعریف قابل- دَ صفت قابل- دَ ستائینې وړ-

صفحه:(ص-فه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کتاب دَ پاڼې یو مخ- یو طرف - جمع صفحې-

صفدر:(صف-دَر)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ لښکر یا دَ صف ماتونکے-

صفدری:(صَف-دَ-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)صف ماتونه- (۲- صفت)دَ صفدر سره منسوب-

صفر:(ص-فر)اسمِ عدد- (۱)نیشت- خالی- هېڅ- (۲)دَ حساب پهٔ علم کښې یې علامت " ۰ " دے-

صفر:(ص-فَر)اسم- واحد- مذکر- دَ قمری کال دوېمه میاشت- دَ چوری میاشت- دَ محرم نه وروستو میاشت- صفره- سپره-

صفرا:(صَف-را)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)دَ زوړ طب مطابق دَ څلورو ګډوډ شویزتوکو کښې دَ یو توکی نوم چې رنګ یې زیړ وی- (۲)دَ یو رنځ نامه چې تروې تروې او شین رنګې باقی پکښې جاری وی- (۳)زیړے-

صفراوی:(صَف-را-وی)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې په چا د صفرا غلبه وی- د صفرا مریض-
صفره:(ص-ف-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ صفر-
صف شکن:(صَف-ش-کن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)قطار ماتونکے- لهٔ قطارونو نه وتونکے- (۲)غرابین- صاف شکن-
صفل:(ص-فَل)اسم صفت- واحد- مذکر- رېښتونے او خالص دوست- غوره- دَ ادم علیه السلام لقب-
صفوت:(ص-فُوت)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)غوره- (۲)اسم- غوره والے- غوره توب-
صفیر:(ص-فیر)اسم صوت- واحد- مذکر- دَ مارغانو اواز- دَ شپېلئ اواز-
صفیل:(ص-فیل)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ فصیل-
صقلی ګر:(صق-لی-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ صیقل ګر-
صک:(صَک)اسم- واحد- مذکر- (۱)وهنه- ټکونه- (۲)قباله- بیه نامه- دستاویز-
صکوک:(ص-کُوک)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ زوره وهنه- ټکونه- (۲)قباله- دستاویز- بیه نامه وغیره لیکنه-
صلا:(ص-لا)اسم- واحد- مؤنث- دعوت- بلنه- راغښتنه-
صلابت:(ص-لا-بت)اسم- واحد- مذکر- مضبوطیا- استحکام- سختی-
صلاح:(ص-لاح)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مشوره- مصلحت- (۲)نیکی- اصلاح- تجویز- اراده-
صلاح کار:(ص-لا-کار)اسم صفت- واحد- مذکر- مشیر- جرګیز- دَ صلاح او مصلحت ملګرے- مشوره ورکونکے- صلاح ورکونکے- جمع صلاح کاران-
صلاح مصلحت:(ص-لاح-مَص-ل-حَت)اسم مرکب- صلاح مشوره- جرګه مرکه-
صلاحیت:(ص-لا-حی-یت)اسم- واحد- مذکر- قابلیت- اهلیت- موافقت- موزونیت-
صُلب:(صُلب)اسم- واحد- مذکر- نسل- پُشت- نطفه- اولاد-
صلح:(صُ-لح)اسم- واحد- مؤنث- راضی نامه- روغه جوړه-
صلح جو:(صُل-حه-جو صُ-لح-جو)اسم صفت- واحد- مذکر- ایمن- امن پسند- قلار- جنګ جګړه نهٔ خوښونکے-
صلح صفائی:(صل-ح-ص-فا-ئی)اسم مرکب- روغه- صفائی کونه- دَ جګړې . خاتمه- خبره سپینونه- لانجه هوارونه-
صلحکار:(صُل-ح-کار)اسم صفت- واحد- مذکر- صلح کونکے- روغه راوستونکے- اصلاح کونکے- جرګیز- درېم ګړے-
صله:(ص-له)اسم- واحد- مؤنث- بخښنه- انعام- ورکړه- بدل- بدله- عوض- بخشش- پیرزوینه-
صله رحمی:(ص-له-رح-می)اسم- واحد- مؤنث- ښهٔ سلوک-
صلی الله علیه واله وسلم:(صَل-لل-لا-هو-عه-لے-ه-وَ-سَل-لَم)دَ رسول الله صلی الله علیه واله وسلم دَ نوم یا دَ نوم اورېدو سره دا کلمات پهٔ تقریر او تحریر کښې وئیلے شی- چې معنئ ېٔ ده پهٔ رسول الله صلی الله علیه وسلم او پهٔ آل دَ رسول پاک دې دَ خدایٔ رحمت او سلام وی-
صلیب:(ص-لیب)اسم- واحد- مذکر- دار- پانسی- سولئ-
صلیبی:(ص-لی-بی)صفت نسبتی- دَ صلیب سره متعلق-
صماخ:(ص-ماخ)اسم- واحد- مذکر- دَ غوږ سُورے- دَ غوږ نلی- دَ غوږ سوړه-
صمد:(ص-مَد)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بزرګ- مشر- لویٔ- (۲)بې نیاز- (۳)لوړ- ووچت- بُلند- (۴)دَ الله تعالی صفتی نوم-
صمصام:(صَم-صام)اسم- واحد- مذکر- توره- تېره توره-
صمیم:(ص-میم)صفت- واحد- مذکر- مُخلص- رېښتینے- دَ زړهٔ ملګرے-
صمیمیت:(ص-می-می-یت)اسم- واحد- مذکر- اخلاص- خلوص- مینه-
صناع:(ص-ناع)اسم صفت- واحد- مذکر- کاریګر- جوړونکے- معمار- هُنرمند-
صناعت:(ص-نا-عَت)اسم- واحد- مذکر- معماری- هُنرمندی- کاریګری- پېشه- کسب-
صنائع:(ص-نا-یع)اسم- واحد- مذکر- دَ صناعت جمع- وګورئ صناعت-
صندقوټے:(صَن-دَ-قو-ټے)اسم تصغیر- صندوق کوټے- وړوکے صندوق- صندکوټے- هړپے-
صندکچه:(صَن-دک-چه)اسم- واحد- مؤنث- صندوقچه- صندقچه- بکسه- صندوقچې- جمع صَندکچې-
صندل:(صَن-دل)اسم- واحد- مذکر- یو بوټے چې لرګے ېٔ ډېر خوشبودار وی- چندن- نباتاتی نوم سېنټېلم البم (SANTALUM ALBUM) یا سېریم مرټی فولیم (SIRIUM MYRTIFOLIUM)-
صندوق:(صَن-دُوق)اسم- واحد- مذکر- بکس- سوټ کېس-
صندوقچه:(صَن-دُوق-چه)اسم- واحد- مؤنث- بکسه- صندوقچوټے- لاسی بکسه- ورکوټے صندوق- صَندقچه- صندقچې- صندوتکوټے- وړوکے ډبے- جمع صندوقچې-
صندوقچې:(صَن-دوق-چی)اسم تصغیر- صندوقچه- بکسه-
صندیک:(صَن-دیک)اسم- واحد- مذکر- جمع صندیکونه- صندوق- بکس-
صنع:(صَ-نع)اسم- واحد- مذکر- کاریګری- څهٔ څیز جوړونه-
صنعت:(صن-عَت)اسم- واحد- مذکر- هُنر- کسب- پېشه- کاریګری-
صنعتی:(صَن-ع-تی)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ کار کسب- دَ هُنر- دَ صنعت سره متعلق-
صنف:(صنف)اسم- واحد- مذکر- جنس- نوع- قسم-
صنفی:(صن-فی)اسم صفت- واحد- مذکر- صنف سره متعلق-
صنم:(ص-نم)اسم- واحد- مذکر- (۱)بت- (۲)معشوق- محبوب-
صنم خانه:(ص-نم- خا-نه)اسم مرکب- بت خانه-
صنوبر:(ص-نو-بر)اسم- واحد- مذکر- دیار- نښتر- دَ چلغوزی بوټے- نباتاتی نوم- پینس روکسبرګی سارجنټ (PINUS ROXBURGHII SARGENT)-

صواب:(صَ-واب)اسم- واحد- مذکر- (۱)سمے- درستي- روغوالے-
(۲- صفت)سم- درست- روغ-
صوابدید:(صَ-واب-دید)اسم- جمع- مذکر- رائې- صلاح- مشوره-
صُوبه:(صُو-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ ملك لویه حصه- دَ ضلعو او دَ پرېژنونو مجموعه-
صوبه دار:(صو-به-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ صوبې اختیارمن-
(۲)دَ فوځ یا دَ ملېشې عهدېدار-
صوبه داري:(صو-به-دا-ري)اسم- واحد- مؤنث- دَ صوبه دار کار- دَ صوبه دار عهده-
صوت:(صَوت)اسم- واحد- مذکر- نعره- چغه- غږ- ژغ-
صُور:(صُور)اسم- واحد- مؤنث- شپېلۍ-
صورت:(صُو-رَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)شکل- مُوشاده- څهره- (۲)تصویر- حالت- کېفیت- (۳)وضع- ډول- شان- (۴)تدبیر- تجویز- موقع-
(۵)مثل- غُندې- (۶)انداز- قرینه- (۷)جامه- لباس- کړهٔ وړهٔ-
صورتګر:(صو-رت-ګر)اسم- واحد- مذکر- نقاش- تصویر جوړونکے- مصوِر-
صوري:(صو-ري)اسم- واحد- مؤنث- مادي- ظاهري- معنوي-
صوف:(صوف)اسم- واحد- مذکز- (۱)وړۍ- (۲)یو قسم نرمه کپړه-
صوفي:(صُو-في)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وړین لباس اغُستونکے- (۲)نېک او پرهېزګاره- عابد- زاهد- (۳)دَ تصوف دَ لارې لاروے-
صوفي ګري:(صو-في-ګهٔ-ري)اسم- واحد- مؤنث- دَ صوفیانو کار-
صوفیانه:(صوف-یا-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- روح سره متعلق- دَ مادې ضد- مذهبي- روحاني-
صولت:(صَوْ-لَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)رُعب- دبدبه- (۲)حمله- چپاؤ-
صوم:(صَوم)اسم- واحد- مؤنث- روژه-
صومعه:(صَو-م-عه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)عبادت خانه- ګرجا- دَ عیسایانو دَ عبادت ځاې- (۲)لویه ټوپۍ-
صوندق:(صُون-دَق)اسم- واحد- مذکر- صندوق- بکس-
صهبا:(صَه-بـا)اسم- واحد- مذکر- سرهٔ شراب- دَ سپینو انګورو شراب-
صیاد:(صَی-یاد)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ښکاري- ښکار کوُنکے-
(۲)معشوق-
صیام:(صَی-یام)اسم- جمع- مذکر- دَ صوم جمع- روژې-
صیانت:(صِ-یا-نَت)اسم- واحد- مذکر- نګراني- نګهباني- حفاظت-
صید:(صید)اسم- واحد- مذکر- ښکار-
صیغه:(صی-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ فعل مختلف شکلونه چې دَ فاعل دَ جنس ، شمېر او حالت پهٔ وجه بدلیږي رابدلیږي- (۲)دَ شعیه ګانو دَ نکاح رسم- ایجاب وقبول-
صېف:(صېف)اسم- واحد- مذکر- اوړے- دَ ګرمۍ موسم-
صېفي:(صې-في)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ صېف سره منسوب-
صېقل:(صې-قل)اسم- واحد- مذکر- رڼونه- روڼونه- ځلکونه- ځلا ورکونه- زنګ لرې کونه- پاکونه- سپینونه- چمک ورکونه- پالش ورکونه-
صېقل ګر:(صې-قل-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- روڼونکے- ځلُونکے- پړقونکے- صېقل کُونکے-

ض:(ضاد/ضواد)حرف- دَ پښتو دَ حروف تهجي دَ پټې پنځویشتم او دَ عربي پنځلسم حرف - دا خاص دَ عربي ژبې حرف دے او په پښتو کښې په مغه الفاظو کښې راځي کوم چې دَ عربي نه پښتو ته راغلي دي- اواز يې دَ "ز"-

ضابط:(ضا-بِط)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حالات قابو کوُنکے- (۲)ساتندوئے- منتظم- ضبط کوُنکے- (۳)کوتوال- دَ پولیس سپائي-

ضارب:(ضا-رِب)اسم صفت- واحد- مذکر- ګوزار کوُنکے- وهونکے- ضرب ورکونکے-

ضال:(ضال)اسم صفت- واحد- مذکر- بې لارې- ګمراه- خوښېدلے-

ضامن:(ضا-مِن)اسم صفت- واحد- مذکر- مغه څوک چې دَ بل چا ذمه واری واخلي- ذمه وار- ضمانت کوُنکے- ضمانتي-

ضامني:(ضا-م-ني)اسم- واحد- مؤنث- ضمانت- ذمه واري-

ضائع:(ضا-يِع)اسم صفت- عبث- بېکاره- بې فائدې- فضول- خراب-

ضبط:(ضَ-بْط/ضبط)اسم- واحد- مذکر- (۱) انتظام- قابو- پابندي- (۲)اخیستنه- تړونه-

ضبطول:(ضَب-طَ-وَل)مصدر متعدي- (۱)زوتول- یادول- بیا بیا ونیل- مشق کول- (۲)نیول- ګېرول- ایسارول- (۳)اخستل- تړول-

ضبطون:(ضَب-طَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ضبطول-

ضبطونکے:(ضَب-طَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ضبطونکي- مؤنث ضبطونکې- وګورئ ضبطول-

ضبطونګ:(ضَب-طه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ضبطول-

ضبطونه:(ضَب-طه-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ضبطول-

ضبطېدل:(ضَب-طې-دَل)مصدر لازم- (۱)قابو کېدل- قبضه کېدل- دَ لاسه وتل- (۲)ګېرېدل- ایسارېدل- (۳)اخستلے کېدل- تړلے کېدل-

ضبطېدن:(ضَب-طې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ضبطېدل-

ضبطېدنګ:(ضَب-طې-دَنګ)حاصل مصدر-وګورئ ضبطېدل-

ضبطېدنه:(ضَب-طې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ضبطېدل-

ضبطېدونکے:(ضَب-طې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ضبطېدونکي- مؤنث ضبطېدونکې- وګورئ ضبطېدل-

ضبطېده:(ضَب-طې-دَه)حاصل مصدر- وګورئ ضبطېدل-

ضخیم:(ضَ-خيم)اسم صفت- واحد- مذکر- کوږ مخ لرونکے- کوږخلے-

ضخامت:(ضَ-خا-مَت)اسم- واحد- مذکر- مضبوطوالے- مضبوطي- پېړوالے- جسامت- غټ والے-

ضخیم:(ضَ-خيم)اسم صفت- واحد- مذکر- غټ- پېړ-

ضد:(ضد/ضَد)اسم- واحد- مذکر- مخالفت- سرکشي- هوډ- اړي-

ضد ځماني:(ضد-ځما-ني)اسم صفت- مرکب- ترکیبي مصدر- (۱)اړوپېچ- اړی کونه- ضد ضدې- بې اتفاقي- کینه ګری- دشمني- ټنټه- قصد- تکرار- جګړه- کینه او حسد- (۲)ډېټنګ بازي یا بهېربازي مقابله یا شرط-

ضدموني:(ضد-مو-ني)اسم- واحد- مؤنث- بګاښ- ثالثي- دربمګړتوب- دَ دوو کسو ترمینځه روغه راوستنه- روغه کونه-

ضدي:(ضَهٔ-دي)اسم صفت- واحد- مذکر- په خپله خبره ټینګ- سرکش- اړی مار-

ضدین:(ضَهٔ-دين)اسم صفت- جمع- مذکر- په خلاف- مدمقابل- مدّ مخالف- بالمقابل-

ضراب:(ضَ-راب)اسم صفت- واحد- مذکر- مغه څوک چې پیسې ټکې جوړوي- زرټاپونے- سکه جوړونکے- (م- عربي)-

ضرابخانه:(ضَ-راب-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- ټکسال- دَ سکو جوړولو ځاۍ- دَ پیسو جوړولو ځاۍ-

ضرب:(ضَ-رَب)اسم- واحد- مذکر- (۱)وار- ګوزار- (۲)زخم- خوږ- (۳)دَ حساب دَ علم یوه قاعده-

ضرب المثل:(ضر-بُل-م-ثَل) متل- دَ مثال په شان-

ضربول:(ضَر-بَ-وَل)مصدر متعدي- دَ حساب په قاعده کښې ضرب ورکول-

ضربه:(ضَر-به)اسم- واحد- مؤنث- ګوزار- ګذار- حمله- وار- مټ- (کول مصدر)-

ضرر:(ضَ-رَر)اسم- واحد- مذکر- نقصان- تاوان- تکلیف- اذیت-

ضررناک:(ضَ-رَر-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- خطرناک- ضرر رسوُنکے- ضرري-

ضرري:(ضَ-رَ-ري)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ضررناک-

ضرغام:(ضَر-غام)اسم- واحد- مذکر- زمرے- مزرے- منزرے- شېر-

ضرور:(ضَ-رور)متعلق فعل- خامخا- په یقین سره- ارومرو-

ضرورت:(ضَ-رو-رَت)اسم- واحد- مذکر- حاجت- احتیاج-

ضروري:(ضَ-رو-ري)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- خامخا-

ضریر:(ضَ-رير)اسم صفت- واحد- مذکر- نابینا- ړوند-

ضریع:(ضَ-ريع)اسم صفت- واحد- مذکر- تریخ- زقوم- تریخ او بدبویه یو قسم ګیاه چې دَ سیند په غاړه ټوکیږي-

ضعف:(ضَعف)اسم- واحد- مذکر- کمزوري- ناتواني- بوډاتوب- کم علمي- جاهلیت-

ضعیف:(ضَ-عيف)صفت- کمزورے- ناتوان- بوډا- کم علمه- جاهل-

ضلالت:(ضَ-لا-لَت)اسم- واحد- مذکر- ګمراهي- بې لاري-

ضلع:(ضِل-عه)اسم- واحد- مؤنث- دَ صوبې یوه حصه-

ضلع خارج:(ضِل-عه-خا-رِج)اسم صفت- واحد- مذکر- ضلع بدر- دَ ضلعې نه شړلے شوے- ایستلے شوے-

ضلع دار:(ضِل-عه-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ ابهٔ خور دَ محکمې منتظم- انتظام کوُنکے-

ضم:(ضم)صفت- واحد- مذکر- یوځاۍ شوے- نښلولے شوے- ورتپلے شوے-

ئ (ځي-رل)، ې (مې-ره-ول)، ي (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پيوست شوي- پيوند شوي-

ضماد:(ضِ-ماد)اسم- لېومل- دواني -پۀ اېو كښې يو ځاىٔ كونه- او پۀ بدن پورې كونه- پټى كونه-

ضمان:(ضَ-مان)اسم- واحد- مذكر- ضمانت- ذمه واري اخستنه- لاس وركونه-

ضمانت:(ضَ-ما-نت)اسم- واحد- مذكر- ذمه واري- ذمه اخستنه- ضمان-

ضمائر:(ضَ-ما-اير/ئر)اسم- جمع- مذكر- دَ ضمير جمع- ضميرونه-

ضمن:(ضِ-مْن)اسم- واحد- مذكر- (۱)لړ- بابت- حقله- سلسله- (۲)سره كېدنه- شموليت- شامليدنه- شركت-

ضمناً:(ضِم-نن)متعلق فعل- پۀ حقله- پۀ بابله- پۀ لړ كښې- پۀ سلسله كښې-

ضمني:(ضِم-ني)اسم صفت- دَ ضمن سره متعلق- دَ ضمن سره منسوب-

ضمه:(ضَ-مه)اسم- واحد- مؤنث- ( )پيښ- دَ پيښ حركت- ضم-

ضمير:(ضَ-مير)اسم- واحد- مذكر- (۱)دَ انسان دننه پټ صحيح فېصله كونكے يو روحانى قوت - جمع ضميرونه/ضمائر- (۲)هغه لفظ چې دَ اسم پۀ ځاىٔ استعمالولے كيږي-

ضميران:(ضَ-مي-ران)اسم- واحد- مذكر- كشمالو- كشمالے- ريحان- يو خوشبودار بوټے- نباتاتى نوم وَسيمم بيسيليكم (OCIMUM BASILICUM)-

ضميمه:(ضَ-مي-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زياتى لګولے شوے څيز- سېوا كړے شوے څيز- اضافى- (۲)هغه حصه چې دَ اصل څيز دَ پوره كېدو نه پس زياته كړے شي- دَ اخبار هغه اشاعت چې دَ مقرره اشاعت نه علاوه دَ خاص ضرورت پۀ وجه وكړے شي-

ضوابط:(ضَ-وا-بط)اسم- جمع- مذكر- قواعد- دستور- طريقې- دَ ضابطې جمع-

ضوطول:(ضو-طه-وَل)مصدر متعدى- يادول- شمېرل- دَ خيالاتو احاطه كول- پۀ ياد كښې راوستل- مشق كول-

ضوطون:(ضو-طه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ضوطول-

ضوطونكے:(ضو-طه-وون-كے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع ضوطونكي- مؤنث ضوطونكې- وګورئ ضوطول-

ضوطونګ:(ضو-طه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ضوطول-

ضوطونه:(ضو-طه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ضوطول-

ضياء:(ضِ-يا)اسم- واحد- مذكر- رڼا- دَ نمر رڼا-

ضيافت:(ضِ-يا-فت)اسم- واحد- مذكر- مېلمستيا- ړوړې- بلنه- دعوت-

ضيف:(ضيف)اسم- واحد- مذكر- مېلمه-

ضيق:(ضيق)اسم- واحد- مذكر- تنګسيا- تكليف-

ضيقُ النّفس:(ضے-قُن-نَفس)اسم- واحد- مذكر- دمه- سالنډے- سابندى- دم كوتاني- يو قسم دَ سينې بيمارى-

ط:(طوي)حرف- د پښتو د حروف تهجي د پټي شپږويشتم او د عربي شپاړسم حرف- دا حرف په هغه لفظونو کښې استعماليږي چې د عربي نه پښتو ته راغلي وي-

طاخون:(طا-خون)اسم- واحد- مذکر- طاعون- تاوون- وبا- يو قسم متعدي مرض-

طارم:(طا-رم)اسم- واحد- مذکر- بالاخانه- برنے منزل-

طاس:(طاس)اسم- واحد- مذکر- جام- ښانک- لګن- پرات-

طاعت:(طا-عت)اسم- واحد- مذکر- بندګي- د خدایٔ تابعداری کونه-

طاعون:(طا-عون)اسم- واحد- مذکر- طاخون- تاوون- يو قسم متعدي مرض-

طاغي:(طا-غي)اسم صفت- واحد- مذکر- نامنونکے- سرکش- نافرمانه- نافرمان-

طاق:(طاق)اسم- واحد- مذکر- (۱)تاخ- (۲)محراب- (۳)د جفت ضد- (۴- صفت)هوښيار- چالاک- ماهر- (۵)لاثاني- بې جوړې-

طاقت:(طا-قت)اسم- واحد- مذکر- زور- توان- وس- دم-

طاقتور:(طا-قت-ور)اسم صفت- واحد جمع- مذکر- طاقت لرونکے- وس لرونکے- زوراور-

طاقچه:(طاق-چه)اسم تصغير- تاخچه- تاخوړے- طاق- درے- وړوکے تاخ-

طاقي:(طا-قي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يو قسم وړوه ټوپۍ- قوله- (۲)هغه اس چې يوه سترګه ئې غټه او بله وړه وي-

طال:(طال)اسم صفت- واحد- مؤنث- زړه-

طالب:(طا-لب)اسم- واحد- مذکر- غښتونکے- خواهشمند- طلبګار-

طالح:(طا-لح)اسم صفت- بدعمله- بدکرداره- بې لارې- بدنامه-

طالع:(طا-لع)اسم- واحد- مذکر- (۱)راختونکے- (۲)حصه- نصيب- قسمت-

طالع من:(طا-لع-من)صفت- واحد- مذکر- وګورئ طالع مند-

طالع مند:(طا-لع-مند)اسم صفت- خوش قسمته- نصيب خور- قسمت خور-

طامح:(طا-مح)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نافرمان- نافرمانه- سرکش- (۲)وچت-

طامع:(طا-مع)اسم صفت- واحد- مذکر- لالچي- طمع لرونکے-

طاؤس:(طا-وس)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ښائسته مارغهٔ- مور-

طاهر:(طا-هر)صفت- واحد- مذکر- صفا- پاک- پاکيزه- سپيځلے-

طائر:(طا-ئر)اسم- واحد- مذکر- مارغهٔ-

طائفه:(طا-ئِ-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جماعت- ټولګے- ګروه- ډله- پره- جنبه- طبقه- (۲)د سندرغاړو او رقاصو ډله-

طب:(طب)اسم- واحد- مذکر- (۱)د دوايانو او علاج علم- طبابت- (۲)علاج-

طبابت:(ط-با-بت)اسم- واحد- مذکر- طبيبي- حکمت- علاج-

طباخ:(ط-باخ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)لنګری- اشپز- پخلے کونکے- پخونکے- (۲- صفت)طباق- کاسه- وړه او پلن تالے- تبخے-

طباشير:(ط-با-شير)اسم- واحد- مذکر- يو قسم مشهوره دوائي-

طباعت:(ط-با-عت)اسم- واحد- مذکر- چپائي- چاپ کونه- د چاپ عمل-

طبع:(ط-بع)اسم- واحد- مؤنث- (۱) سرشت- طبيعت- خصلت- خوئ- (۲)چاپ- مهر لګونه-

طبعاً:(طب-عن)متعلق فعل- د خوئ خصلت متعلق- د مزاج متعلق- فطرتي- په طبع سره-

طبق:(ط-بق)اسم- واحد- مذکر- (۱)تالے- پيالي- تال- (۲)د ځناورو يوه بيماري- سوه پښے- (۳)تخته- پلن څيز- (۴)درجه- منزل-

طبقات:(طب-قات)اسم- جمع- مذکر- د طبقې جمع- درجې- منزلونه- رتبې- پردې-

طبقاتي:(طب-قا-تي)صفت- د طبقات سره منسوب-

طبقه:(طب-قه)اسم- واحد- مؤنث- ډله- پره- جنبه- جماعت- (۲)درجه- رتبه- منزل-

طبقه بندي:(طب-قه-بن-دي)اسم مرکب- جماعت بندي- درجه بندي-

طبل:(ط-بل)اسم- واحد- مذکر- نغاره- ډول- ډمامه-

طبله:(طب-له)اسم- واحد- مذکر- د ساز غږولو آله- دوپړی- دوکړی-

طبلي:(طب-لي)اسم- واحد- مؤنث- وړوکې طبله- دبلي- ډولکے-

طبي:(ط-بي)اسم صفت- د طب په بابله- د طب په حقله- د طب متعلق-

طبيب:(ط-بيب)اسم- واحد- مذکر- حکيم- د يوناني دوايانو په علم پوهه- د طب ماهر-

طبيبي:(ط-بي-بي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طبابت- د حکمت کار- (۲- صفت)د طب متعلق- حکيمي- د طب سره منسوب-

طبيعت:(ط-بي-عت)اسم- واحد- مذکر- خوئ خصلت- مزاج- طبع-

طبيعتاً:(ط-بي-عه-تن)متعلق فعل- په طبع- په طبيعت سره- فطرتاً-

طبيعي:(ط-بي-عي)اسم صفت- وګورئ طبعي-

طبيله:(ط-بې-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اصطبل- طويله- د اسونو د تړلو ځائې- (۲)خيل خانه- د کور ټول افراد-

طرار:(ط-رار)اسم صفت- واحد- مذکر- چالاک- تېره ژبے- (۲)ګنکپ- کنکپ- ګنډکپ-

طراره:(ط-را-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- مسته- چالاکه-

طراري:(ط-را-ري)اسم- واحد- مذکر- (۱)تېزي- چالاکي- (۲)ګنکپي- کنکپي- ګنډکپي-

طراز:(ط-راز)اسم- واحد- مذکر- نقش ونګار- په کپړه بوټې، ګلونه- (۲- صفت)په مرکباتو کښې د "کوونکي" په معنې-

طراوت:(ط-را-وت)اسم- واحد- مذکر- تازګي- ښېرازي- نم- لوندوالے-

طرب:(ط-رب)اسم- واحد- مذکر- سرور- خوشحالي- خوشالي- مستي- ښادي-

طربانه:(طر-با-نه)متعلق فعل- د طرب سره متعلق-

طربناکه:(ط-رب-نا-که)اسم- واحد- مؤنث- مسته- خوشحاله- خوشاله-

ئ (ځی-ږل)، ۍ (ځې-ره-وَل)، ی (پیا-لی)، ې (تن-دې) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

طرحه:(طر-حه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بنیاد- (۲)طریقه- اندازه- هغه مصرعه چې د هغې په وزن، ردیف او قافیه مختلف شاعران ارادتاً لیکل وکړي-

طرز:(طرز)اسم- واحد- مذکر- اندازه- طریقه- طور-

طرف:(ط-رف)اسم- واحد- مذکر- لور- غاړه- ژۍ- مخه- پړه- پلو- رو- اړخ- خوا-

طرفة العين:(طر-فه-تل-عين)متعلق فعل- د سترګو په رپ کښې-

طرفدار:(ط-رف-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- معاون- حمایت کوونکے- جانب دار- مرسته کوونکے- پړه کوونکے- طرفداری کوونکے-

طرفداري:(ط-رف-دا-ري)اسم- واحد- مؤنث- جانبداري- حمایت- مرسته- تعاون- پړه-

طرفين:(ط-ره-فين)اسم- جمع- مذکر- دواړه طرفه- دواړه اړخه- دواړه فریق-

طرة:(ط-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شمله- (۲)زلفې- (۳)کاکل- پیچکې- (۴)عجیبه خبره- (۵)یو قسم کالے-

طریق:(ط-ریق)اسم- واحد- مذکر- (۱)لارې- (۲)قاعده- دستور- رواج- روش- (۳)مذهب-

طریقت:(ط-ري-قت)اسم- واحد- مذکر- لار- مذهب- علم تصوف- د باطن تزکیه-

طریقه:(ط-ري-قه)اسم- واحد- مؤنث- چل- رو- لار- ترکیب- قاعده-

طشت:(طشت)اسم- واحد- مذکر- تال- لوئ ښانک-

طعام:(ط-عام)اسم- واحد- مذکر- ډوډۍ- خوراک- روټۍ- اتام- جمع طعامونه-

طعامیه:(ط-عام-يه)اسم- واحد- مؤنث- طعام- خوراک- ډوډۍ- روټۍ- نمرۍ- طعمه-

طعمه:(طع-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ طعامیه-

طعمه دار:(طع-مه-دار)صفت- واحد- مذکر- ډوډۍ ورکوونکے- روټۍ ورکوونکے- خوراک ورکوونکے-

طعمه داري:(طع-مه-دا-ري)اسم- واحد- مؤنث- خوراک ورکونه- ډوډۍ ورکونه-

طعن:(طعن)اسم- واحد- مذکر- عیب راوېستنه- پېغور- طنز- طعنه-

طعنه:(طع-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ طعن-

طغیان:(طغ-یان)اسم- واحد- مذکر- سرکشي- زور زیاتے- ظلم-

طغیاني:(طغ-یا-ني)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د سیند راختنه- چله- (۲)بغاوت- سرکشي- نافرماني-

طفیل:(ط-فیل)اسم- واحد- مذکر- ذریعه- وسیله- باعث-

طفیلي:(ط-فې-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- خوشامدګر- د بل په ډوډۍ لوئ شوے- تالي څټ-

طلا:(ط-لا) اسم- واحد- مذکر- (۱)سرهٔ زر- (۲)یو خاص قسم تېل چې په وجود مښلے کیږي- (۳)د سرو زرونه جوړه یوه خاص قسم سکه-

طلاق:(ط-لاق)اسم- واحد- مذکر- ښځه پرېښودنه- ښځه د نکاح نه ازادوونه-

طلاقت:(ط-لا-قت)اسم- واحد- مذکر- تېزژبے- تېزخبرے- تېزګفتارے-

طلاقول:(ط-لا-ق-ول)مصدر متعدی- طلاق ورکول- بېلول- جُدا کول-

طلاقون:(ط-لا-ق-ون)حاصل مصدر- وګورئ طلاقول-

طلاقوونکے:(ط-لا-ق-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع طلاقوونکي- مؤنث طلاقوونکې- وګورئ طلاقول-

طلاقونګ:(ط-لا-ق-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ طلاقول-

طلاقونه:(ط-لا-ق-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ طلاقول-

طلاقي:(ط-لا-قي)اسم صفت- هغه سړے چې ښځې له ئې طلاق ورکړے وي- (۲)بې غیرته- دله- دُوس-

طلاقېدل:(ط-لا-قې-دل)مصدر لازم- طلاق کېدل- طلاق ورکړے کېدل- ښځه له خاونده ازادېدل-

طلاقېدن:(ط-لا-قې-دن)حاصل مصدر- وګورئ طلاقېدل-

طلاقېدنګ:(ط-لا-قې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ طلاقېدل-

طلاقېدنه:(ط-لا-قې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ طلاقېدل-

طلاقېدونکے:(ط-لا-قې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع طلاقېدونکي- مؤنث طلاقېدونکې- وګورئ طلاقېدل-

طلاقېده:(ط-لا-قې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ طلاقېدل-

طلاوت:(ط-لا-وت)اسم- واحد- مذکر- تازګي- ښائست- زیبائي- ښکلے والے-

طلائي:(ط-لا-ئي)اسم صفت- واحد- مؤنث- د طلا سره منسوب- سرو زرو سره منسوب-

طلب:(ط-لب)اسم- واحد- مذکر- (۱)غښتنه- خواهش- (۲)تنخواه- ضرورت- (۳)په مرکباتو کښې د غښتونکي په معنٰی- (۴)دعوت- راغښتنه-

طلبانه:(طل-با-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه رقم یا فیس چې په عدالت کښې د مقدمې د پاره داخلولے شي- کورټ فیس-

طلبول:(ط-ل-به-ول)مصدر متعدی- غښتل- راغښتل- بلل- طلب کول- حاضرول-

طلبون:(ط-ل-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ طلبول-

طلبوونکے:(ط-ل-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع طلبوونکي- مؤنث طلبوونکې- وګورئ طلبول-

طلبونګ:(ط-ل-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ طلبول-

طلبونه:(ط-ل-به-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ طلبول-

طلبوه:(ط-ل-به-وه)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ طلبول-

طلبېدل:(ط-ل-بې-دل)مصدر لازم- غښتے کېدل- غښتلے کېدل- بللے کېدل-

طلبېدن:(ط-ل-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ طلبېدل-

طلبېدنګ:(ط-ل-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ طلبېدل-

طلبېدنه:(طَ-لَ-بې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ طلبېدل-

طلبېدونکے:(طَ-لَ-بې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع طلبېدونکي- مؤنث طلبېدونکې- وګورئ طلبېدل-

طلبېدهٔ:(طَ-لَ-بې-دَهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ طلبېدل-

طلسم:(طِ-لِسم)اسم- واحد- مذکر- جادو- سحر- نظربندی- تماشه- نااشنا کار-

طلعت:(طَل-عَت)اسم- واحد- مذکر- مخ- څېره- رُخ-

طلوع:(طُ-لوع)اسم- واحد- مذکر- ختنه- نمرختنهٔ- نمرڅرګېده- د نمر سترګه ختنه- نمرڅرګ-

طله:(طِ-له)اسم- واحد- مؤنث- زر- سرهٔ زر-

طله کاری:(طِ-له-کا-ري)اسم- د زرو کار- زرګری-

طمانچه:(طَ-مان-چه)اسم- واحد- مؤنث- څپېړه- پړق- (۲)طماچه-

طمانیت:(طَ-ما-نی-یت)اسم- واحد- مذکر- اطمینان- تسلی-

طمطراق:(طُم-طه-راق)اسم- واحد- مذکر- دبدبه- شان- شوکت-

طمع:(طَم-ع)اسم- واحد- مؤنث- اسره- لالچ- حرص- طمعه-

طمعه:(طَم-عه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ طمع-

طناب:(طَ-ناب)اسم- واحد- مذکر- (۱)رسی- د خېمې پړے- (۲)هغه زمکه چې پهٔ کال کښې پهٔ کښې یو فصل کیږی- تناؤ-

طناز:(طَ-ناز)اسم صفت- واحد- مذکر- ناز او ادا کونکے- ناز اونخرې کونکے-

طنبک:(طَم-بک)اسم- واحد- مذکر- وړوکے ډول- ډولکے-

طنبور:(طَم-بور)اسم- واحد- مذکر- ستار- د یو مشهور ساز نوم-

طنز:(طَنز)اسم- واحد- مذکر- ټوقه- د سپکاوې خبره-

طنطنه:(طَن-طَه-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱) د باجو او سُرونو اواز- (۲)شان شوکت- تېس ټپاس- غرور- دبدبه- رُعب داب- (۳)بدخوئ- بدمزاجی- غصه-

طواف:(طَ-واف)اسم- واحد- مذکر- (۱)د څهٔ نه چاپېره تاوېدنه- (۲)د خانه کعبې نه تاوېدنه-

طوالت:(طَ-وا-لَت)اسم- واحد- مذکر- وږدوالے- زیاتوالے-

طوائف:(طَ-وا-ئف)اسم- واحد- مؤنث- ډمه- ګډېدونکې-

طوبیٰ:(طُو-بیٰ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پاک- ډېر پاک- (۲)(اسم)خېر- سعادت- خوښی- (۳)پهٔ جنت کښې د یوې ونې نوم-

طور:(طَور)اسم- واحد- مذکر- طریقه- ډول- طرز- حالت- کیفیت- غندې توب- دود- رسم ورواج- رَوش-

طور:(طور)اسم- واحد- مذکر- د هغه غر نامه چې الله تعالیٰ به پرې موسیٰ علیه السلام سره راز کولو- د هغه غر نوم چې الله تعالیٰ به پرې موسیٰ علیه السلام ته خپله جلوه ښودله-

طور طریقه:(طَ-ور-طَ-ري-قه)اسم مرکب- جوړ جاړ- کړهٔ وړهٔ- جمع طور طریقې-

طوطی:(طو-طی)اسم- واحد- مذکر- یوه وړه لکی لرونکے شین مارغهٔ چې د انسان پهٔ شان خبرې زده کولو صلاحیت لری-

طوطی مرغی:(طو-طی-مر-غی)اسم مرکب- وګورئ طوطی موتی-

طوطی موتی:(طو-طی-مو-تی)اسم مرکب- د ګرولے شوې واورې رنګینه غنډان، چې ماشومان ئې خوری- طوطی مرغی-

طوطیا:(طو-طیا)اسم- واحد- مؤنث- نیلاتوتا- میلاتوتا- د رنجو کانړے-

طوغ:(طوغ)اسم- واحد- مذکر- جنډه- بېرغ- عَلَم- نشان- نښه- توغ- جمع طوغان/طوغونه-

طوفان:(طو-فان)اسم- واحد- مذکر- (۱)سېلاب- نیز- (۲)خول- تېزه سېلی- (۳)واوېلا- غوغا- (۴)الزام- تېمتونه- (۵- صفت)تباه- برباد-

طوفان جال:(طو-فان-جال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ توپان جال-

طوفانی:(طو-فا-نی)اسم صفت- (۱)طوفان سره منسوب-

طوق:(طوق)اسم- واحد- مذکر- (۱)غاړکی- لهٔ مری نه تاؤ پړے یا پټی- (۲)د غلامی پټی- (۳)اوری- ګلی بند- (۴)لهٔ مارغانو د مری نه تاؤ پټه-

طول:(طُول)اسم- واحد- مذکر- وږدوالے- درازی- د وږدوالی فاصله-

طولانی:(طو-لا-نی)اسم صفت- واحد- مذکر- وږد- دراز-

طولے:(طو-لا)صفت- واحد- مذکر- کامل- پوره- مکمل-

طومار:(طو-مار)اسم- واحد- مذکر- (۱)نغښتے- (۲)سرګزشت- وږده قیصی- وږد تحریر-

طویل:(طَ-ویل)اسم- واحد- مذکر- لوی- وږد- دراز-

طهارت:(طَ-ها-رت)اسم- واحد- مذکر- پاکی- صفائی- پاکوالے- پاکیزګی- د بدن پاکوالے-

طهر:(طُهر)اسم- واحد- مذکر- د ښځې د پاکی ورځې- د حیض نه پاکېدنه-

طیاره:(طَ-یا-ره)اسم- واحد- مؤنث- جهاز- جاز- الوتکه-

طیب:(طَی-یب)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پاک- حلال- (۲)لذیذ- مؤنث طیبه-

طینت:(طي-نت)اسم- واحد- مذکر- طبیعت- طبع- خصلت- مزاج- خوئ بوئ-

ئ (څې-رل)، ۍ(مې-ره-ول)، ئ(پیا-لی)، ې(تن-دیر) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ظ:(ظوي)حرف- دَ پښتو دَ پښې اوويشتم او دَ عربي وؤلسم حرف-
ظالم:(ظا-لِم)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بې رحمه- ظلم کوُنکے- زياتے کوُنکے-
ظالمانه:(ظا-ل-ما-نه)صفت- دَ ظلم سره متعلق- دَ ظلم پهٔ حقله-
ظاهر:(ظا-هِر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ښکاره- واضح- پهٔ نظر راتلونکے- څرګند-
ظاهراً:(ظا-ه-رن)متعلق فعل- پهٔ ظاهره- پهٔ ډاګه- پهٔ ښکاره- ظاهر سره متعلق-
ظاهرداري:(ظا-هِر-دا-ري)اسم- واحد- مؤنث- ځان ښودنه- رياکاري- نمود-
ظاهرول:(ظا-ه-رَ-وَل)مصدر متعدي- ښکاره کول- واضحه کول- څرګندول-
ظاهرون:(ظا-ه-رَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ظاهرول-
ظاهرونکے:(ظا-ه-رَ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ظاهرونکي- مؤنث ظاهرونکې- وګورئ ظاهرول-
ظاهرونګ:(ظا-ه-ر-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ظاهرول-
ظاهرونه:(ظا-ه-ر-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ظاهرول-
ظاهرېدل:(ظا-ه-رې-دَل)مصدر لازم- واضحه کېدل- ښکاره کېدل- څرګندېدل- پهٔ ډاګه کېدل-
ظاهرېدن:(ظا-ه-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ظاهرېدل-
ظاهرېدنګ:(ظا-ه-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ظاهرېدل-
ظاهرېدنه:(ظا-ه-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ظاهرېدل-
ظاهرېدونکے:(ظا-ه-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ظاهرېدونکي- مؤنث ظاهرېدونکې- وګورئ ظاهرېدل-
ظاهرېدهٔ:(ظا-ه-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ظاهرېدل-
ظرافت:(ظَ-را-فَت)اسم- واحد- مذکر- خوش طبعي- ټوقې ټقالې- مسخرې- نخرې پېښې-
ظرف:(ظَرف)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوښے- (۲)حوصله- (۳)ګنجائش- ځائې کېدنه- (۴)استعداد- قابليت- (۵)چالاکي- زيرکي- (۶)هغه اسم چې دَ ځائې يا وخت معنىٰ ورکوي-
ظروف:(ظُ-رُوف)اسم- جمع- مذکر- دَ ظرف جمع- وګورئ ظرف-
ظرفيت:(ظَر-فِي-يت)اسم- واحد- مذکر- حوصله- اهليت- استطاعت- طاقت-
ظريف:(ظَ-ريف)اسمِ صفت- واحد- مذکر- خوش مذاجه- خوش طبع- ټوقمار- ټوقي- ګپي- دَ خندا خبرې او نخرې پېښې کوُنکے-
ظفر:(ظَ-فَر)اسم- واحد- مذکر- فتح- کاميابي- غلبه- ګټه-
ظل:(ظِل)اسم- واحد- مذکر- سېورے-
ظلم:(ظُ-لَم)اسم- واحد- مذکر- زياتے- بې رحمي- زبردستي-
ظُلمات:(ظُل-مات)اسم- جمع- مذکر- دَ ظلمت جمع- تيرې- ظُلمتونه- تاريکې-
ظلماتي:(ظُل-ما-تي)صفت- دَ ظلمت سره منسوب-
ظلمت:(ظُل-مَت)اسم- واحد- مذکر- تيارهٔ- توره تيارهٔ- تاريکي-
ظَلوم:(ظَ-لوم)اسم صفت- واحد- مذکر- لوئې ظالم- ډېر زيات- حد نه وتونکے-
ظن:(ظَن)اسم- واحد- مذکر- ګومان- خيال- شک- اندازه- رائې-
ظهر:(ظُ-هر)اسم- واحد- مذکر- شا- ملا-
ظهور:(ظُ-هور)اسم- واحد- مذکر- ظاهرېدنه- ښکاره کېدنه-
ظهير:(ظَ-هير)اسم صفت- واحد- مذکر- معاون- حامي- ملګرے- دوست-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ه "(ژ-ړه)، هٔ "(ډو-بې-دهٔ)

ع:(عين)د پښتو د حروف تهجي اتویشتم حرف او د عربي اتلسم حرف د عربي مخصوص حرف - د پښتو په ځنو الفاظو کښې وئیلے شي کوم چې د عربي نه پښتو ته راغلي دي-

عابد (عا-بد)اسم صفت- واحد- مذکر- پارسا- عبادت کونکے-

عاج:(عاج)اسم- واحد- مذکر- (۱)د هاتي غاښ- (۲)(صفت) کوږ-

عاجز:(عا-جز)اسم صفت- واحد- مذکر- بې وسه- ناچار- غریب-

عاجزي:(عا-جز-زي)اسم- واحد- مؤنث- بې وسي- غربت- ناچاري- کمزوري-

عاجل:(عا-جل)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تادې کونکے- جلدباز- (۲)حاضر- موجود-

عاجي:(عا-جي)اسم- واحد- مؤنث- د هاتي د غاښونو نه جوړه ړمنځ-

عاد:(عاد)اسم عدد- هغه عدد چې یو معلوم عدد پوره تقسیم کړي-

عادات:(عا-دات)اسم- جمع- د عادت جمع- خصلتونه- خویونه- عادتونه-

عاداعظم:(عا-د-اع-ظم)اسم عدد- هغه لوی نه لوی عدد چې دوه یا دوؤ نه زیات عددونه پوره پوره.تقسیم کړي-

عادت:(عا-دت)اسم- واحد- مذکر- خصلت- خوی- خوی بوی- طبیعت-

عادتاً:(عا-د-تن)متعلق فعل- په عادت سره- په طبیعت سره- د عادت مطابق-

عادل:(عا-دل)اسم صفت- واحد- مذکر- عدل کونکے-

عادلانه:(عا-د-لا-نه)صفت- د عدل- د عدل نه ډک-

عادي:(عا-دي)اسم صفت- مذکر- مؤنث- (۱)عادت- اموخته- بلد- (۲)معمولي-

عار:(عار)اسم- واحد- مذکر- شرم- حیا- غیرت-

عارس:(عا-رس)اسم- واحد- نسک- مسور- د مسورو دال- د نباتاتي نوم د پاره وګوری مسور-

عارض:(عا-رض)اسم- واحد- مذکر- (۱) مخ- رُخسار- انګے- (۲)(صفت)راپیښېدونکے- مخې ته راتلونکے- لاحق کېدونکے-

عارضه:(عا-ر-ضه)اسم- واحد- مؤنث- ناجوړتیا- بیماري- رنځ- مرض-

عارضي:(عار-ضي)اسم صفت- واحد- مؤنث- سرسري- د لږ وخت - اتفاقیه-

عارف:(عا-رف)اسم صفت- واحد- مذکر- پوهېدونکے- خبردار- نېک انسان- خداشناس-

عاري:(عا-ري)اسم- واحد- (۱)بربنډ- (۲)خالي- تش- (۳)معذور- مجبور- عاجز- تنګ- بې وسه- (۴)هغه نثر چې نه مسّجع وي او نه رنګین- ساده نثر-

عاریت:(عا-ري-یت)اسم- واحد- مذکر- قرض- پور- غښتنه-

عاریتهً:(عا-ري-یه-تن)متعلق فعل- د قرض په توګه- د څو ورځو د پاره- په پور-

عاریتي:(عا-ري-یه-تي)اسم صفت- واحد- مؤنث- عارضي- د لږ وخت د پاره- قرض غښتلے شوے-

عازم:(عا-زم)اسم صفت- واحد- مذکر- اراده لرونکے- قصد کونکے-

عاشق:(عا-شق)اسم- واحد- مذکر- مین- شیدا- مشتاق- غښتونکے- په مینه کښې غرق-

عاشقانه:(عا-شه-قا-نه)صفت- عاشق سره منسوب-

عاشقتوب:(عا-شق-توب)اسم- واحد- مذکر- مئینتوب- مینه کونه- محبت کونه- مئنېدنه-

عاشق دړی:(عا-شق-د-ړی)اسم صفت- واحد- مذکر- بې خونده عاشق- کمزورے عاشق-

عاشقي:(عا-شه-قي)اسم- واحد- مؤنث- مینه، محبت- مئینتوب- مئینېدنه-

عاشوره:(عا-شو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱) د محرم د میاشتې وړومبی لس ورځې- (۲)د امامانو میاشت- د محرم میاشت- د حسنیانو میاشت-

عاصم:(عا-صم)اسم صفت- واحد- مذکر- بچ کونکے- محافظ-

عاصي:(عا-صي)اسم صفت- واحد- مذکر- ګنهګار- نامنونکے- نافرمانه- جمع عاصیان-

عاطر:(عا-طر)صفت- واحد- مذکر- (۱)خوشبویه- خوشبودار- (۲)پاک- پاکیزه- نفیس-

عاطف:(عا-طف)اسم- واحد- مذکر- (۱)راز- (۲)صفت- مهرباني کونکے- غیبي اواز کونکے- (شاعرانه)-

عاطفت:(عا-ط-فت)اسم- واحد- مذکر- مهرباني- شفقت- پېرزوینه- ورکړه- عنایت-

عافي:(عا-في)اسم صفت- واحد- مذکر- معاف کونکے- بخښونکے-

عافیت:(عا-في-یت)اسم- واحد- مذکر- خیریت- سلامتیا- سلامتي-

عاق:(عاق)اسم صفت- واحد- مذکر- د مور پلار نه وېزاره- نافرمانه- د مور پلار نامنونکے-

عاقبت:(عا-ق-بت)اسم- (۱)انجام- نتیجه- اخرت- (۲)اخر- د نتیجې په ډول-

عاقل:(عا-قل)اسم صفت- واحد- مذکر- هوښیار- پوهېدونکے- عقلمند- دانا-

عاقلانه:(عا-ق-لا-نه)صفت- د عاقل سره منسوب-

عالم:(عا-لم)اسم- واحد- مذکر- (۱) دنیا- جهان- زمانه- (۲)ډېر خلق- جمع عالمونه-

عالم:(عا-لم)اسم صفت- واحد- مذکر- د علم خاوند- پوهېدونکے- دانشمند- جمع عالمان-

عالم الغیب:(عا-ل-مل-غیب)اسم صفت- د الله تعالی صفتي نوم- د غیب علم لرونکے- په غیبو پوهه-

عالم جبروت:(عا-ل-م-جبه-روت)اسم- واحد- مذکر- د الله تعالی د صفاتو مرتبه-

عالمګیر:(عا-لم-ګیر)اسم صفت- واحد- مذکر- په ټول جهان خور- په ټول عالم خور-

عالم ملکوت:(عا-ل-م-م-ل-کوت)اسم- واحد- مذکر- د فرښتو دنیا-

عالم ناسوت:(عا-ل-م-نا-سوت)اسم- واحد- مذکر- د اجرام او د اجسام

دُنیا- دَ بنیادمو دُنیا- دَ انسانانو دُنیا- فاني دُنیا-

عالمي:(عا-لَ-مي)صفت- دَ عالم سره منسوب-

عالي:(عا-لي)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وُچت- لوئ- دَ لوئ مرتبې خاوند-

عام:(عام)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خاص ضد- مشهور- مرخاي خور- (۲)رواجي- رسمي- (۳)معمولي- ادنیٰ-

عام خاص:(عام-خاص)اسمِ صفت- مرکب- عام وخاص- دَ سېلمې-

عامر:(عا-مر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- اباد- پوره- ډک- (۲)اَبادونکے- تعمیرونکے- جوړونکے-

عامل:(عا-مل)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ کوډو تعویذونو وغیره کار کوُنکے- (۲)هغه سړے چې دَ مال باقاعده زکوٰة ورکوی- (۳)کار کوُنکے- (۴)عمل کوُنکے- (۵)گورنر- حاکم-

عامله:(عا-م-له)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- عام خلق-- عامیان- هغه خلق چې خاص نهٔ وی- دَ معاشرې زیاته طبقه-

عامول:(ع-م-وَل)مصدرِ متعدی- عام کول- مشهورول- شهرت ورکول- مقبولول- خورول-

عامون:(عا-م-وَن)حاصلِ مصدر- وَگوره عامول-

عامونکے:(عا-م-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وَگوره عامول-

عامونگ:(عا-م-ونگ)حاصلِ مصدر- وَگوره عامول-

عامونه:(عا-م-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وگوره عامول-

عاموهٔ:(عا-م-وهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وَگوره عامول-

عامه:(عا-مه)اسم- واحد- مؤنث- عام خلق- عامیان- هغه خلق چې زیات وی- دَ معاشرې زیاته طبقه-

عامي:(عا-مي)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ړوند- ناخوانده- جاهل-

عامیانه:(عام-یا-نه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- عام-

عامېدل:(عا-مې-دَل)مصدرِ لازم- عام کېدل- مشهورېدل- شهرت موندل- مقبولېدل-

عامېدن:(عا-مې-دن)حاصلِ مصدر- وَگوره عامېدل-

عامېدنگ:(عا-مې-دنگ)حاصلِ مصدر- وَگوره عامېدل-

عامېدنه:(عا-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وگوره عامېدل-

عامېدونکے:(عا-مې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع عامېدونکي- مؤنث عامېدونکې- وَگوره عامېدل-

عامېدهٔ:(عا-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراري دَ واحد غائب صیغه- وَگوره عامېدل-

عاید:(عا-یَد)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)لگولے- مقرر شوے- (۲)واپس راتلونکے- راگرځېدونکے-

عائدات:(عا-ئې-دات)اسم- جمع- امدنی- منافعې- گټې- فائدې- دَ امدن ذریعې-

عائداتي:(عا-ئِ-دا-تي)اسمِ صفت- دَ عائدات سره- دَ گټې یا اُمدن ذریعه یا ذرائع-

عایق:(عا-یِق)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- مانع- خنډ- منع کوُنکے- ایسارونکے- مخ نیوے کوُنکے- پهٔ څهٔ کار کښې خنډ راپېدا کوُنکے- جمع عوایق-

عائله:(عا-ئِ-له)اسم- واحد- مؤنث- خاندان- ښځه او ماشومان- ټبر- ښځه او بال بچ- اَبُل- ال-

عبا:(غ-با)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ وړی چُغه- (۲)یو قسم واسکټ چې لستوڼي ئې نهٔ وی-

عباد:(ع-باد)اسم- جمع- دَ عبد جمع- غلامان- بندگان-

عبادت:(ع-با-دَت)اسم- واحد- مذکر- خدائ یادونه- بندگي- نمونځ-

عبارت:(ع-با-رَت)اسم- واحد- مذکر- تحریر- لیک- مضمون- خبره- جمله- مقصد- مُراد-

عباس:(عه-باس)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)بوټ تندے لرونکے- غُصه ناک- (۲)مذرے- زمرے- منزرے- دَ سائنسی نوم دَ پاره وَگوره زمرے-

عباسی گُل:(غ-با-سی-گُل)اسم- واحد- مذکر- دَ یو گُل نوم- گُل عباسی- کلا باسی- نباتاتي نوم (MIRABILIS JALAPA)-

عبث:(غ-بث)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)فضول- (۲)بېکاره- (۳)بې فائدې- ضائع- (۴)متعلق فعل- ناحق- بې وجې-

عبد:(عَبد)اسم- واحد- مذکر- بنده- غُلام- جمع عباد-

عبدیت:(عَب-دی-یَت)اسم- بندگي- غلامي-

عبراني:(عَب-را-ني)اسم- واحد- مؤنث- دَ بني اسرائیلو زړه ژبه چې پکښې تورات نازل شوے وو- دَ یهودیانو مذهبی ژبه-

عبرت:(عِب-رَت)اسم- واحد- مذکر- (۱) فکر کونه- نصیحت اخستنه- نصیحت حاصلونه- (۲)وېره- خوف-

عبرتناک:(عِب-رَت-ناک)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ عبرت نه ډک- دَ نصیحت نه ډک-

عبودیت:(عُ-بو-دی-یَت)اسم- واحد- مذکر- بزرگي- غلامي- اطاعت- عبادت-

عبور:(غ-بُور)صفت- واحد- مذکر- بدمزاجه- ترش طبعیت- کاړساؤ- بړوس- عباس-

عبوسیت:(عُ-بو-سی-یَت)اسم- واحد- مذکر- ترش روئي- بدمزاجي- بړوسوالے- کاړساوے- کورمتوب-

عتاب:(عَ-تاب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)غصه- ملامتیا- (۲)بدمزاجي- بدخوئي-

عتیق:(عَ-تیق)صفت- واحد- مذکر- اصیل- ساهو- محترم- پخوانے- زوړ-

عجائب:(عَ-جا-ئب)صفت- جمع- مذکر- دَ عجیب جمع- دَ تعجب نه ډک څیزونه- ناآشنا څیزونه-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(زَ-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

عجائب خانه:(عَ-جا-ئب-خا-نه)اسمِ مرکب- عجائب گر- هغه ځایَ چرته چې ناآشنا او عجیبه څیزونه پراتهٔ وی-

عجائب:(عَ-جا-ئب-گر)اسمِ مرکب- واحد- مذکر- وګورئ عجائب خانه-

عجَب:(عَ-جَب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- عجیبه- ناآشنا- حېرانوُنکے-

عجب:(عُ-جَب)اسم- واحد- مذکر- غُرور- تکبر- لوئي- خودبیني-

عجز:(عَ-جِز/عجز)اسم- واحد- مذکر- عاجزی- کمزورتیا- نااهلیت- ناچاری- انکسار-

عُجلت:(عُج-لَت)اسم- واحد- مذکر- تېزی- جلتی- تادی- تُندی- تلوار- بیړه-

عجم:(عَ-جَم)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)ګونګے- (۲)دَ عربستان نه بغیر نور ملکونه-

عجمی:(عَ-جَ-مي)صفت- دَ عجم سره منسوب-

عجیب:(عَ-جیب)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ناآشنا- نادر- دَ تعجب او حېرانتیا نه ډک-

عدالت:(عَ-دا-لَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)انصاف- عدل- (۲)کچری- دَ انصاف ځایَ- (۳)لهٔ یوې نه زیاتو ښځو تر مینځه دَ حقوقو دَ مساوات سلوک-

عدالتی:(عَ-دا-لَ-تي)صفت- دَ عدالت سره منسوب-

عداوت:(عَ-دا-وَت)اسم- واحد- مذکر- دُشمنی- بدی- عناد- مخالفت- نفرت- کینه-

عدت:(عد-دَت)اسم- واحد- مذکر- شمېره- شمار- هغه موده چې طلاقه شوې ښځه یا کونډه شوې ښځه پکښې دَ بل چا سره نکاح نهٔ شی کولے- دَ طلاقې شوې ښځې دَ پاره درې میاشتې دَ کونډې دَ پاره څلور میاشتې دَ حاملې دَ پاره دَ ماشوم تر پېدا کېدو پورې مقرره وخت-

عدد:(عَ-دَد)اسم- واحد- مذکر- شمار- شمېره- هندسه-

عددی:(عَ-دَ-دی)صفت- دَ عدد سره منسوب- دَ اعداد و شمار پهٔ حقله-

عدسه:(عَد-سه)اسم- واحد- مؤنث- هغه شفافه چې پلوشې پهٔ یو مرکز راټولوی یا ې خوروی-

عدل:(عَ-دَل/عَدل)اسم- واحد- مذکر- (۱)انصاف- (۲)انصاف کونه- برابرونه- برابرے-

عدلی:(عَد-لي)صفت- واحد- مذکر- دَ عدل سره منسوب-

عَدلیه:(عَد-لی-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ حکومت دَ دریو ځانګو نه هغه یوه ځانګه چې دَ انصاف کار کوی- دَ انصاف یا عدل ځانګه-

عدم:(عَ-دَم)اسم- واحد- مذکر- دَ وجود ضد- نیشتوالے- نیشت- نېستی- دَ هست ضد-

عدم پته:(عَ-دَم-پَ-ته)اسمِ صفت مرکب- بې درکه- ورک- ټنډوغپ- ترے تم-

عدن:(عَ-دَن)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټول عُمری وُسېدنه- همېشه والے- (۲)دَ ادم علیه السلام او بی بی حوا باغ-

عدو:(عَ-دو)اسم- واحد- مذکر- دُشمن- دښمن- مخالف- رقیب- حریف-

عدول:(عُ-دُول)اسم- واحد- مذکر- انکار- نافرمانی کونه- سخ ګرځونه-

عدیل:(عَ-دیل)صفت- واحد- مذکر- برابر- همسر- هم مرتبه- یو شان- دَ ښځې یاد کیجاوې دَ یو اړخ سورلی- دَ یو انډی سورلی-

عدیم:(عَ-دیم)صفت- واحد- مذکر- (۱) ورک- ناپېد- نایاب- پټ- (۲)جاهل- نادان-

عذاب:(عَ-ذاب)اسم- واحد- مذکر- تکلیف- دړد- دَ ګنا سزا-

عذابول:(عَ-ذا-بهٔ-وَل)مصدرِ متعدی- تکلیف وررسول- دړد رسول- سزا ورکول- کړول-

عذابون:(عَ-ذا-بهٔ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ عذابول-

عذابوُنکے:(عَ-ذا-بهٔ-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع عذابوُنکی- مؤنث عذابوُنکې- وګورئ عذابول-

عذابونګ:(عَ-ذا-بهٔ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ عذابول-

عذابونه:(عَ-ذا-بهٔ-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ عذابول-

عذابېدل:(عَ-ذا-بې-دَل)مصدرِ لازم- تکلیفېدل- دړدېدل- سزا کېدل- کړېدل-

عذابېدن:(عَ-ذا-بې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ عذابېدل-

عذابېدنګ:(عَ-ذا-بې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ عذابېدل-

عذابېدنه:(عَ-ذا-بې-دَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ عذابېدل-

عذابېدونکے:(عَ-ذا-بې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع عذابېدونکی- مؤنث عذابېدونکې- وګورئ عذابېدل-

عذابېدهٔ:(عَ-ذا-بې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ عذابېدل-

عذار:(عِ-ذار)اسم- واحد- مذکر- بارخو- اننګے- غمبورے- رُخسار-

عذر:(عِ-ذر/عُذر)اسم- واحد- مذکر- (۱) بهانه- حیله- (۲)معذرت- تعزیت- (۳)دلیل- اعتراض- (۴)انکار-

عُذرژن:(عُ-ذر-ژَن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- معذور- عذردار- عُذر کوُنکے- معذرت لرونکے- عذرمن- عُذرمند-

عذرخواهی:(عُ-ذر-خوا-هي)اسم- واحد- مؤنث- معافی غُښتنه- دَ خپلې بې وسی اظهار کونه-

عذرمن:(عُ-ذر-مَن)صفت- وګورئ عذرژن-

عذرمند:(عُ-ذر-مَند)صفت- وګورئ عذرژن-

عرابه:(عَ-را-به)اسم- واحد- مؤنث- ارابه- دَ ګاډی وغېره پایه-

عرائېض:(عَ-را-ئېض)اسم- جمع- مذکر- دَ عریضې جمع- درخواستونه- خواستونه-

عربده:(عَر-بَ-ده)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- (۱)بدخونی- بې لحاظی- جګړه- فساد-

عرس:(عُرس)اسم- واحد- مذکر- دَ پیرانو او ولیانو دَ کلیزې فاتحې رسم- دَ فاتحې او سماع جلسه-

عرش:(عَرش)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تخت- دَ بادشاه دَ ناستې ځایَ-

"ی" (څې-رل)، "ې"(هې-ره-وَل)، "ی"(پیا-لې)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

(۲)مرتبه- عزت- (۳)چت- (۴)تمبو- خېمه- (۵)د مادياتو او فلکياتو د حدونو نه بالا تر مقام چرته چې د مقربو فرشتو نه علاوه صرف حضور صلى الله عليه وآله وسلم د معراج په شپه رسېدلے وو- د الله تعالىٰ تخت-

عرشه:(عَر-شه)اسم- واحد- مؤنث- د جهاز چت- د ممبر د ټولو نه اخرى زينه يا پوړۍ-

عرصات:(عه-ره-صات)اسم- واحد- مذکر- قيامت- د محشر ورځ- د حساب کتاب ورځ-

عرصه:(عَر-صه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وخت- موده- وقفه- زمانه- (۲)فاصله-

عرض:(عَرض)اسم- واحد- مذکر- (۱)درخواست- خواست- (۲)پلن والے- خور والے- ارت والے- (۳)د کور سامان- اسباب-

عرض بلد:(عَرض-بلد)اسم مرکب- هغه فرضى کرښې چې د زمکې په پلنوالى کښې د تقسيم په غرض راکښلے شوې وى-

عرضه:(عَر-ضه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څرګندونه- ښکاره کونه- (۲)بيانونه- عرض کونه-

عرضى:(عَر-ضى)اسم صفت- واحد- مذکر- خواست- درخواست- عريضه- هغه ليک چې پکښې حال عرض کړے شوے وى-

عرف:(عُرف)اسم- واحد- مذکر- (۱)تعارف- پېژندګلو- (۲)فائده- (۳)دستور- رواج- (۴)د اصل نوم نه علاوه دويمه نامه چې بنده پرې مشهور وى-

عرفات:(عه-ره-فات)اسم- واحد- مذکر- هغه ميدان چرته چې حاجيان د حج په ورځ راجمع کيږى او لبيک لبيک وائى-

عرفان:(عر-فان)اسم- واحد- مذکر- پېژندګلو- پېژندګلى- اشنائى- شناخت- د الله تعالىٰ معرفت- د الله تعالىٰ پېژندنه-

عرفه:(عَ-رَ-فه)اسم- واحد- مؤنث- د لوئ اختر نه يوه ورځ وړاندې ورځ- د ذى الحجه نهمه نېټه-

عرفى:(عُر-فى)اسم صفت- واحد- مذکر- رسمى- معمولى- د رسم مطابق-

عرق:(عَ-رَق)اسم- واحد- مذکر- (۱) خوله- (۲)رس- اُبۀ- جوهر-

عرق النساء:(عِر-قُن-ن-سا)اسم- يوه بيمارى چې د پښې يو رګ پکښې ناکاره شى-

عروج:(عُ-روج)اسم- واحد- مذکر- وُچتوالے- لوړوالے- بلندى- مرتبه-

عروس:(عَ-روس)اسم- واحد- مؤنث- ناوې-

عروض:(عَ-روض)اسم- واحد- مذکر- هغه علم چې پکښې د شعرونو د صحيح وزن د معلومولو قاعدې بيان شوې وى-

عُروق:(عُ-روق)اسم- جمع- مذکر- رګونه- وژې- زبښې-

عريان:(عُر-يان)اسم صفت- واحد- مذکر- بربنډ- لغړ- لوڅ-

عريانى:(عُر-يا-نى)اسم- واحد- مؤنث- بربنډوالے- لغړتوب- لغړوالے- لوڅوالے-

عريض:(عَ-ريض)اسم صفت- واحد- مذکر- وير- پلن- خوروور-

عريضه:(عَ-رى-ضه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چيټۍ- خط- (۲)درخواست- خواست- (۳)هغه درخواست چې مخصوصه دُعا پرې ولُستې شى او د الله تعالىٰ يا د امام مهدى په نامه په سيند کښې وبيولے شى-

عزا:(عَ-زا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ماتم پرستى- ماتم- وير- (۲)د امام حسين عليه السلام ماتم-

عزازيل:(عَ-زا-زيل)اسم- واحد- مؤنث- شيطان- ابليس-

عزائم:(عَ-زا-يم)اسم- جمع- مذکر- د عزم جمع- وګورئ عزم-

عزت:(عِ-زت)اسم- واحد- مذکر- لوئى- بزرګى- حُرمت- ابرو- احترام-

عزتمن:(عِ-زت-مَن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- عزتمند- د عزت خاوند- د عزت څښتن- محترم- عزت دار- عزتناک-

عزتمند:(عِ-زت-مَند)اسم صفت- مذکر- وګورئ عزتمن-

عزتناک:(عِ-زت-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ عزتمن-

عزرا:(عز-را)اسم- واحد- مؤنث- ظاهر مخ- ظاهرى صورت-

عزرائيل:(عز-را-ئيل)اسم- واحد- مؤنث- د مرګ فرشته- هغه فرشته چې په روحونو قبض کولو مقرر کړے شوې ده-

عزم:(عَ-زم)اسم- واحد- مذکر- (۱)نيت- اراده- قصد- (۲)فيصله- (۳)مُدعا-

عزوجل:(عَز-زَ-جَل)اسم- واحد- مذکر- غالب او د جلال خاوند- د خدائ تعالىٰ صفتى نوم-

عزيز:(عَ-زيز)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خپل- رشته دار- (۲)همسر- برابر- (۳)مرغوب- خوښ- خوږ- (۴)کمياب-

عزيزګلوى:(عَ-زيز-ګل-وى)اسم- واحد- مؤنث- رشته دارى- برابرى- خپلولى- عزيزولى- عزيزوالى- خپښى-

عزيزوالى:(عَ-زيز-وا-لى)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ عزيزګلوى-

عزيزولى:(عَ-زيز-وَ-لى)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ عزيزګلوى-

عزيمت:(عَ-زى-مَت)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اراده- نيت- (۲)دم- منتر- افسون-

عساکر:(عَ-سا-کر)اسم- جمع- مذکر- فوځونه- لښکرې- د عسکر جمع-

عسر:(عُ-سر)اسم- واحد- مذکر- سختى- تنګسيا- تنګوالے- (۲)حادثه-

عسرت:(عُس-رت)اسم- واحد- مذکر- تنګسيا- تکليف- مفلسى- غريبى- جمع عسرتونه-

عسس:(عَ-سس)اسم صفت- واحد- مذکر- کوتوال- د ښار نګران-

عسکر:(عَس-کر)اسم- واحد- مذکر- (۱)لښکر- فوځ- (۲)صفت- سپائى- لښکرى- فوځى-

عسکرى:(عَس-کَ-رى)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپائى ګيرت- سپائى توب- لښکرى توب- (۲)صفت- د عسکر سره منسوب- بهادر- تکړه- زړه ور-

عسکريت:(عَس-کَ-رى-يت)اسم- واحد- مذکر- تکړه والے- بهادرى- زړه ورتيا- شجاعت- په جنګ پوهېدنه-

عسل:(عَ-سَل)اسم- واحد- مذکر- شات- ګبين- انګبين- شهد-

عشا:(ع-شا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ نماښام نه پس تر سبا راختو پورې وخت- (۲)نماسختن- دَ نماښام دَ نمانځهٔ نه پس فرض نمونځ-

عشاق:(عُ-شاق)اسم صفت- جمع- مذکر- دَ عاشق جمع- مئينان-

عشر:(عُ-شر)اسم صفت- واحد- مذکر- لسمه حصه-

عشرت:(عِش-رَت)اسم- واحد- مذکر- ښهٔ ژوند- آرام- سُوکالي-

عشق:(عِشق)اسم- واحد- مذکر- مينه- محبت- دَ لېونتوب تر حده رسېدلې مينه-

عشق باز:(عِشق-باز)صفت- حسن پرست- عاشق مزاج- عياش-

عشق بازي:(عِشق-با-زي)اسم صفت- عاشقي- مئينتوب- حسن پرستي- عياشي-

عشقي:(عِش-قي)صفت- دَ عشق سره منسوب-

عشوه:(عِش-وه)اسم- واحد- مؤنث- نازو ادا- غمزه- نخره- فرېب-

عشوه پرداز:(عِش-وه-پَر-داز)اسم صفت- واحد- مذکر- نخرې کوُنکے- نخره کوُنکے- ناز کوُنکے-

عصا:(عَ-صا)اسم- واحد- مؤنث- امسا- کونتې- چوکه-

عصاره:(عُ-صا-ره)اسم- واحد- مؤنث- نچوړې کړے شوې اُبهٔ يا رس- عرق- جوهر-

عصب:(عَ-صَب)اسم- واحد- مذکر- پټه- پله- جمع اعصاب-

عصباني:(عَص-با-ني)اسم صفت- واحد- مذکر- قهرژَند- غضب ناک- غصه ناک- قهرژَن-

عصبانيت:(عَص-با-ني-يَت)اسم- واحد- مذکر- قهرژني- غصه توب- غضبناک والے-

عصبي:(عَص-بي)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)وارخطا- (۲)اعصابي بيمار-

عصبيت:(عَ-ص-بي-يَت)اسم- واحد- مذکر- بُغض- کينه- حسد- تربګني- تعصب- دُشمني-

عصر:(عَ-صَر/عَصر)اسم- واحد- مذکر- (۱)روزګار- (۲)وخت- زمانه- (۳)دَ نمازيګر وخت- نمازيګر- دَ نمازيګر نمونځ-

عصرانه:(عَص-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ نمازيګر ډوډۍ- دَ نماښام ډوډۍ- عصريه-

عصري:(عَص-ري)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)نوے- جديد- دَ موجوده زمانې سره تعلق لرونکے- دَ دې وخت- دَ دې زمانې- (۲)دَ عصر سره منسوب-

عصريه:(عَص-ري-يه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ عصرانه-

عصفور:(عُص-فور)اسم- واحد- مذکر- چڼچڼه- مرغۍ-

عصمت:(عِص-مَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناموس او عزت- پاکي- پاکدامني- هغه پاکي چې دَ پېدائش نه تر مرګه پورې څهٔ ګناه وُنهٔ کړے شي-

عصمت فروشه:(عِص-مَت-فَ-رو-شه)اسم صفت- رنډۍ- بدکاره ښځه- کنجره- کنجرتوب- زناکاري- رنډيتوب-

عصمت فروشي:(عِص-مَت-فَ-رو-شي)اسم- واحد- مؤنث- بدکاري-

عصيان:(عِص-يان)اسم- واحد- مذکر- ګناه- نافرماني-

عضو:(عُ-ضو)اسم- واحد- مذکر- اندام- دَ بدن حصه- جمع اعضاء-

عضوتناسل:(عُض-وِ-تَه-نا-سُل)اسم- واحد- مذکر- غېږ- ذکر- غين- عضو مخصوص-

عضومخصوص:(عُض-وِ-مَخ-صُوص)اسم- واحد- مذکر- وګورئ عضوتناسل-

عطا:(عَ-طا)اسم- واحد- مذکر- ورکړه- بخښنه- پېرزوېنه- انعام-

عطاپاش:(عَ-طا-پاش)اسم صفت- واحد- مذکر- بخشش کوُنکے- سخي-

عطار:(عَ-طار)صفت- واحد- مذکر- عطري- عطرفروش- عطر خرڅوُنکے- عطاري-

عطارد:(عُ-طا-رِد)اسم- واحد- مذکر- يوه سياره چې دَ نمر سره نژدې ده او پهٔ (۸۸) ورځو کښې يو چکر پوره کوي-

عطاري:(عَ-طا-ري)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ عطار-

عطر:(عطر)اسم- واحد- مذکر- خوشبوئي- دَ ګلونو عرق چې خوشبو کوي-

عطرپلبل:(عِ-طر-پُ-لبِل)اسم- واحد- جمع- مذکر- يو قسم خوشبويه تېل-

عطرفروش:(عِ-طر-فَ-روش)اسم صفت- واحد- مذکر- عطر خرڅوُنکے- عطري- عطار-

عطرمن:(عِ-طر-مَن)اسم صفت- واحد- مذکر- خوشبويه- خوشبودار- خوشبوئي کوُنکے- مؤنث عطرمنه-

عطسه:(عَط-سه)اسم- واحد- مؤنث- انترږشے- اينګے-

عطش:(عَ-طَش)اسم صفت- واحد- مذکر- تنده- دَ اُبو ښښلو خواهش وحاجت-

عطف:(عَ-طَف)اسم- واحد- مذکر- (۱)توجه- راګرځونه- رُغبت- (۲)هغه لفظ چې پهٔ يوه فقره کښې دَ دوؤ خبرو تړون راولي-

عطيه:(عَ-طي-يه)اسم- واحد- مؤنث- بخشش- سخاوت- انعام کړے شوے څيز- بخښلے شوے څيز-

عظمت:(عَظ-مَت)اسم- واحد- مذکر- شان- لوئي- بزرګي- لويې والے-

عظيم:(عَ-ظيم)اسم صفت- واحد- مذکر- ډېر لويې- بزرګ-

عظيم الشان:(عَ-ظي-موش-شان)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ ډېرې لويې مرتبې خاوند- دَ لويُ شان خاوند- لويُ شان لرونکے-

عفت:(عِف-فَت)اسم- واحد- مذکر- پاکدامني- پاکي- پاکوالے- پرهېزګاري-

عفريت:(عِ-فَ-ري-يَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دېو- (۲)غټ سړے- تيار او څُرب سړے-

عفو:(عَف-وهٔ)اسم- واحد- مذکر- معافي- بخښنه- خطا- معاف کونه-

عفونت:(عُ-فو-نَت)اسم- واحد- مذکر- بدبوئي-

عفه:(عَ-فه)اسم- واحد- مؤنث- پرغز- يوه بيماري-

عفيف:(عَ-فيف)اسم صفت- واحد- مذکر- بې داغه- پاکدامن- پرهېزګار- نېک اخلاق- معصوم- مؤنث عفيفه-

عقاب:(عُ-قاب)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو قسم مشهور مارغهٔ چې ډېر تېز

او وُچت الوخی- دَ باز يو قسم- (۲)دَ کیمیاګرو پهٔ اصطلاح کښې نوشادر- نیشادر-

عقائد:(عَ-قا-ئد)اسم- جمع- مذکر- دَ عقیدې جمع- پوخ یقین- پهٔ حق پوهېدنه او هغه پهٔ زړهٔ کښې اچونه-

عقبیٰ:(عُق-با)اسم- واحد- مؤنث- اخرت- دوېم جهان-

عقد:(عَقد)اسم- واحد- مذکر- (۱)تړون- ترنه- وعده- (۲)نکاح-

عقدهٔ:(عُق-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غُټه- وَل- (۲)بندېز- مخ نیوے- (۳)ګرانه خبره- پیچیده خبره-

عقرب:(عَق-رَب)اسم- واحد- مذکر- (۱)لړم- (۲)دَ اسمان دَ یو برج نوم- (۳)دَ شمسی کال اتمه میاشت-

عقل:(عَ-قَل/عَقل)اسم- واحد- مذکر- هوښیارتیا- پوهه- دانائي- فهم- ادراک-

عقل دندان:(عَ-قَل-دَن-دان)اسم مرکب- جمع- مذکر- دَ عقل داړې- دَ عقل غاښونه-

عقلمن:(عَ-قَل-مَن)صفت- واحد- مذکر- عقل مند- عاقل- پوهه- هوښیار- سیانه- زیرک- دانا-

عقلمند:(عَ-قل-مَند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ عقلمن-

عقلی:(عَق-لي)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ عقل سره منسوب-

عقوبت:(عَ-قو-بَت)اسم- واحد- مذکر- عذاب- سزا- تکلیف- درد-

عقوبت:(عَ-قو-بَت)اسم- واحد- مذکر- انجام- اُخره-

عقیدت:(عَ-قی-دَت)اسم- واحد- مذکر- اعتقاد- دَ زړهٔ یقین- ارادت- ایمان-

عقیده:(عَ-قی-ده)اسم- واحد- مؤنث- مذهبی یقین- پوخ اعتماد- پوخ یقین- ایمان- اعتقاد-

عقیق:(عَ-قیق)اسم- واحد- مذکر- دَ سور رنګ یو قیمتی کانړے چې غمی ترې جوړولے شی-

عقیقه:(عَ-قی-قه)اسم- واحد- مؤنث- هغه بلنه چې دَ ماشوم دَ پېدائښت پهٔ اوومه ورځ دَ هغهٔ دَ سر خرېیلو او نوم ایښو دَ تقریب پهٔ موقع ورکولے شی-

عقیمه:(عَ-قی-مه)اسم صفت- واحد- مؤنث- شنډه ښځه- هغه ښځه چې بال بچ یې نهٔ کیږی-

عکاس:(عَ-کاس)اسم صفت- واحد- تصویر جوړونکے- تصویر وېستونکے- عکاسی کونکے-

عکس:(عَکس)اسم- واحد- مذکر- (۱)سېورے- (۲)اپوټه شوے لفظ- (۳)عداوت- دُشمنی- بغض- ضد-

عکس العمل:(عَک-سُل-عَ-مَل)اسم مرکب- جواب- ردعمل-

علاج:(عِ-لاج)اسم- واحد- مذکر- (۱)چاره- تدبیر- (۲)دارو- دَ رنځ دارو- (۳)سزا- جمع علاجونه-

علاقه:(عِ-لا-قه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تعلق- دوستی- تړون- (۲)تحت- حکومت- (۳)حدود- سرحد- (۴)ځایُ- حلقه- (۵)جاګیر- ملکیت-

علاقه دار:(عِ-لا-قه-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)رشته دار- (۲)دَ وړې حلقې یا ضلعې حاکم-

علاقه داری:(عِ-لا-قه-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ وړې ضلعې یا حلقې مشری- (۲)وړه ضلع- حلقه- دَ حاکم دَ انتظام لاندې حلقه-

علالت:(عَ-لا-لَت)اسم- واحد- مؤنث- بیماری- ناروغتیا- ناروغی- دَ طبیعت ناسازی-

علامات:(عَ-لا-مات)اسم- جمع- مذکر- دَ علامت جمع- وګورئ علامت-

علامت:(عَ-لا-مَت)اسم- واحد- مذکر- نشان- نښه- نښان- نشانه- نښانه- درک- پېژندګلی- جمع علامتونه، علامات-

علامه:(عَ-لا-مه)صفت- واحد- مذکر- لوئ عالم- غېر معمولی قابلیت لرونکے-

علامه:(عَ-لا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱) نښه- نښانه- درک- نښه نښانه- (۲)ننداره- حالت- جمع علامې-

علانیه:(عَ-لا-نی-یه)متعلق فعل- پهٔ ډاګه- پهٔ ښکاره- پهٔ جار-

علاوه:(عَ-لا-وه)متعلق فعل- (۱)سوا- پرې دَ پاسه- (۲)بې- بغېر- سوا-

علت:(عِ-لَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)سبب- وجه- ایلت- (۲)ناروغی- بیماری- کمزوری- ناسازی- (۳)شر- شرارت- شېطانی- جګړه-

علتی:(عِ-له-تی)اسم صفت- واحد- مذکر- ایلتی- پساتی- ټنټه باز- جګړمار- شری- مؤنث- علتی- جمع علتیان-

علف:(عَ-لَف)اسم- واحد- مذکر- واښهٔ- ګیا-

علق:(عَ-لَق)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژوروالے- (۲)جم شوې وینه- چکه وینه-

علم:(عِ-لَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوهه- خبرېدنه- واقفیت- هوښیارتیا- دانائی- هُنر- جوهر- (۲)جادو- منتر-

علم:(عَ-لَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)نشان- جنډه- نښه- (۲)دَ اسم معرفه قسم-

علمدار:(عَ-لَم-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې دَ لښکر نه یې وړاندې نشان یا جنډه نیولې وی-

علمداری:(عَ-لَم-دا-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ علم سره منسوب- (۲)دَ لښکر پهٔ سر کښې جنډه وړنه یا دَ جنډې وړلو کار-

علمی:(عِل-می)صفت- دَ علم سره منسوب-

علمیت:(عِل-می-یَت)اسم- واحد- مذکر- علم لرنه- علم کېدنه- قابلیت-

علن:(عَ-لَن)صفت- ښکاره- څرګند-

علنی:(عَ-له-نی)متعلق فعل- پهٔ ډاګه- پهٔ جار- پهٔ ښکاره-

علوفه:(عُ-لو-فه)اسم- واحد- مذکر- خوراک- خوراکه- روزی- راتب- وظیفه-

علی الدوام:(عَ-لَد-دَ-وام)صفت- واحد- مذکر- دائم- همېشه پاتې کېدونکے-

علی الفور:(عَ-لل-فور)متعلق فعل- سمدستی- زر- ژر-

علی بند:(عَ-لی-بَند)اسم- واحد- مذکر- پهٔ مړوند دَ تړلو کالے-

علیا:(عُل-یا)صفت- واحد- مذکر- ډېر وُچت- شان و شوکت لرونکے- خاځله نهٔ استعمالیږی-

زبر"(عَ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(کِ-تاب)، جزم"(شکون)، "ة"(زَ-ره)، "ة"(ډو-بې-دهٔ)

علیت:(عل-لی-یَت)اسم- واحد- مذکر- علت توب- علت والے- ابلت والے-

علیل:(عَ-لیل)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ناروغه- هغه څوک چې ناروغه وی- بیمار- رنځور-

علیم:(عَ-لیمَ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ډېر پوهېدونکے- لوئ عالم- دَ الله تعالیٰ یو صفاتی نوم- ډېر علم لرونکے-

علییون:(عَ-لی-یُون)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ جنت وُسېدونکے- جنتی-

علیین:(عَ-لی-یین)اسم- واحد- مذکر- جنت-

علیحده:(عَ-لی-ده)اسم- واحد- مؤنث- جُدا- ځانله- بېل-

علیک سلیک:(عَ-لیک-سَ-لیک)اسم- واحد- مذکر- دَ لارې دَ سر اشنائی- معمولی پېژند ګلو- لږ شان واقفیت- سلام کلام- سلام دُعا- سرسری ملاقات- معمولی تعلق-

عمارت:(عِ-ما-رَت)اسم- واحد- مذکر- اٰبادی- کور- مکان-

عماری:(عَ-ما-ری)اسم- واحد- مؤنث- انبالی- امبالی- هوده- ډولی- دَ اوښ کجاوه، کیجاوه- دَ اوښ ډولی-

عمامه:(عِ-ما-مه)اسم- واحد- مؤنث- پګړی- دستار- پټکے-

عمداً:(عَ-مَ-دَن)متعلق فعل- قصداً- ارادتاً- پهٔ اراده سره- پهٔ قصد سره-

عمده:(عُم-ده)اسم صفت- واحد- مذکر- غوره- خوښ- منتخب- ښهٔ-

عمر:(عُ-مَر)اسم- واحد- مذکر- ژوند- وخت- موده- عهد- دور-

عمره:(عُم-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ حج دَ ورځو نه علاوه دَ بیت الله شریف زیارت او سعی کونه-

عمری:(عُم-ري)اسمِ صفت- واحد- مذکر- دَ عمر- دَ ټول عمر- ابدی- ټول عمری- همېشه همېشه- همېش- تمام عمر- کلهم عمر- پهٔ مخه- هر مېشه- هروخت- مدام- تل- ترقیامته- تل تر تله-

عمق:(عُ-مَق)اسم- واحد- مذکر- ژور والے-

عمل:(عَ-مَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)کار- کړهٔ- (۲)اختیار- (۳)جادو- (۴)اثر- (۵)انتظام- (۲)څهٔ دَ نشې څیز استعمالونه- عادت-

عملاً:(عَ-مَ-لن)متعلق فعل- دَ عمل لهٔ اعتباره- پهٔ عمل سره-

عملداری:(عَ-مَل-دا-ری)حاصلِ مصدر- علاقه داری- صوبه داری- دَ لاس لاندې احاطه- صوبه- ریاست-

عملنامه:(عَ-مَل-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه رجسټر یا کاغذ چې پکښې دَ بنده ښهٔ یا بد عمل درج کړے شوے وی- (۲)دَ انسان دَ اعمالو هغه یاداشت چې پهٔ انسان دوه مقررې فرښتې یُ لیکی او دَ قیامت پهٔ ورځ به انسان ته پېش کولے شي-

عملی:(عَ-مَ-لی)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ عمل سره منسوب- (۲)نشئ- اموخته- عادت-

عمود:(عَ-مود)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ډم- ستن- (۲)هغه خط مستقیم چې پهٔ بل خط مستقیم باندې قائمېدو سره برابرې زاوئې جوړوی-

عمودی:(عَ-مو-دی)اسم- واحد- مذکر- دَ عمود سره منسوب-

عموم:(عَ-موم)اسم- واحد- مذکر- عام کېدنه- بغېر دَ شرطه دَ هر چا دَ پاره کېدنه-

عموماً:(عُ-مو-مَن)متعلق فعل- پهٔ عمومی توګه- پهٔ عمومی ډول- عام طور سره- اکثر-

عمومی:(عُ-مو-می)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- دَ عموم سره منسوب-

عمومیت:(عُ-مو-می-یت)اسم- واحد- مذکر- عام والے- عام کېدنه-

عمیق:(عَ-میق)اسم- واحد- مذکر- ژور- تان- تانه-

عنا:(عَ-نا)اسم- واحد- مؤنث- تکلیف- مشقت- درد- مصیبت-

عناب:(عُ-ناب)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مېوه چې دَ وینې دَ صفائی دَ پاره دَ دارو پهٔ توګه استعمالولے شی- پېوندی بېره- ولېتی بېره- نباتاتی نوم رم نس زیزی فس (RHUMNUS ZIZYPHUS)-

عناد:(عِ-ناد)اسم- واحد- مذکر- دُشمنی- مخالفت- کینه- عداوت- ضد- اړی-

عنادی:(عِ-نا-دی)اسم صفت- واحد- مذکر- عناد لرونکے- مخالف دُشمن-

عناصر:(عَ-نا-صر)اسم- جمع- مذکر- دَ عُنصرجمع- وګورئ عنصر-

عنان:(عِ-نان)اسم- واحد- مذکر- (۱)واګې- لګام- (۲)اختیار- واک-

عنان ګیر:(عِ-نان-ګیر)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)واګې نیونکے- (۲)واکمن- اختیارمن-

عنایات:(عِ-نا-یات)اسم-جمع- وګورئ عنایت-

عنایت:(عِ-نا-یَت)اسم- واحد- مذکر- مهربانی- احسان- شفقت- پېرزوېنه- بخښنه- جمع عنایات، عنایتونه-

عنب:(عِ-نَب)اسم- واحد- مذکر- انګور- کور- نباتاتی نوم وټس ونیفېرا (VITIS VINIFERA)-

عنبر:(عَم-بَر)اسم- واحد- مذکر- یو خوشبودار څیز چې دَ سمندر پهٔ غاړه موندے شی-

عنبرپاش:(عَم-بَر-پاش)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)عنبر شیندونکے- (۲)خوشبوئی ناک- خوشبویه- (۳)معشوقه- محبوبه-

عنبرفام:(عَم-بَر-فام)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- (۱)عنبرګون- دَ عنبر پهٔ شان رنګ لرونکے- (۲)ښائېسته- ښکلے-

عنبرګون:(عَم-بر-ګون)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ عنبرفام-

عنبریز:(عَم-بَ-ریز)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه چې عنبر پرې لګېدلے وی- دَ عنبرو- (۲)ښکلے- ښائېسته- (۳)محبوب- معشوق- مؤنث عنبریزه-

عنبرین:(عَم-بَ-رین)صفت- واحد- مذکر- (۱)دعنبرو- دَ عنبرو نه ډک- (۲)دَ عنبرو پهٔ شان-

عند:(عِند)اسم- واحد- مذکر- (۱)نژدې- جُخت- ورته- پهٔ مرکباتو کښې مستعمل دے-

عندلیب:(عَن-دَ-لیب)اسم- واحد- مذکر- بلبل- یو مشهور مارغهٔ چې پهٔ ګلونو مئین دے-

ئ" (څی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

عندی:(عن-دی)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې په لیکلو او ونېلو کښې دَ خپلې خوښې او ناخوښې اظهار کوی-

عنصر:(عُن-صُر)اسم- واحد- مذکر- ماده- اصلی جُز- اصل او بنیاد- جمع عناصر-

عنفوان:(عَن-فُ-وان)اسم- واحد- مذکر- جمع- مذکر- اغاز- شروع- ابتدا- دَ څهٔ څیز شروع او بنابست-

عنقا:(عَن-قا)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ یو فرضی مارغهٔ نوم- (۲)هغه څیز چې نایاب وی-

عنقریب:(عَن-قَ-ریب)متعلق فعل- ډېر ژر- سمدستی- فوراً- څهٔ وخت- نژدې-

عنکبوت:(عَن-کَ-بوت)اسم- واحد- مذکر- جولا- غنه- خرمگس- (۲)دَ قرآن شریف نهویشتم سورة-

عنوان:(عُن-وان)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرخط- دَ مضمون سرخی- سرلیک- سرنامه-

عوارض:(عَ-وا-رِض)اسم- جمع- مذکر- دَ عارضې جمع- وګورئ عارضه-

عواطف:(عَ-وا-طِف)اسم- جمع- مذکر- دَ عاطفت جمع- وګورئ عاطفت-

عواقب:(عَ-وا-قِب)اسم- جمع- دَ عاقبت جمع- وګورئ عاقبت-

عوام:(عَ-وام)اسم- جمع- مذکر- دَ عامه جمع- خلق- رعایا- اولس-

عوامل:(عَ-وا-مِل)اسم- جمع- مذکر- دَ عامله او عامل جمع- وګورئ عامل-

عوابق:(عَ-وا-بِق)اسم- جمع- وګورئ عابق-

عود:(عَود)اسم- واحد- مذکر- واپس کېدنه- راګرځېدنه- واپسی- ستنه-

عود:(عُود)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو خوشبودار لرګے- (۲)دَ یوې باجې نوم-

عورت:(عَو-رَت)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ انسان دَ بدن هغه حصه چې دَ مغې بربنډول دَ شریعت لهٔ رویه ناجائز وی- (۲)ښځه-زنانه- ارتینه- عورته-

عورته:(عَو-ره-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ عورته-

عورتینه:(عَور-تی-نه)اسم- واحد- مؤنث- ارتینه- ښځه- عورت- عورته- زنانه-

عوسکار:(عَو-سَ-کار)اسم صفت- واحد- مذکر- کاوړ- برچ- ګواښ- منت-

عوض:(عِ-وَض)اسم- واحد- مذکر- (۱)بدله- معاوضه- اجر- (۲)تاوان- سزا- عذاب-

عهد:(عَ-هَد)اسم- واحد- مذکر- وعده- ژبه- اقرار- (۲)وخت- موده- زمانه-

عهدشکن:(عَ-هَد-ش-کَن)اسم صفت- واحد- مذکر- وعده ماتونکے- وعده خلاف- بې ژبې کونکے-

عهدنامه:(عَ-هد-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وعدې لیک- دَ وعدې تحریر- (۲)یوه وړوکې مذهبی کتابچه-

عهده:(عُه-ده)اسم- واحد- مؤنث- منصب- درجه- مرتبه- رُتبه- حیثیت- جمع عهدې-

عهده دار:(عُه-ده-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ عُهدې څښتن- دَ رُتبې خاوند- عُهدېدار- عهده لرونکے- مؤنث عهده داره- جمع عهده داران-

عهدېدار:(عُه-دې-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ عهده دار-

عیادت:(عِ-یا-دَت)اسم- واحد- مذکر- دَ ناروغی تپوس- دَ ناروغی پوښتنه- دَ رنځور پوښتنه-

عیار:(عَ-یار)صفت- چالاک- دوکه باز- فرېب ژن- مکار- مکرژن- ټګ- ټګژن-

عیاری:(عَ-یا-ری)اسم- واحد- مؤنث- چالاکی- دوکه- فرېب- مکر- ټګی-

عیاش:(عَ-یاش)صفت- واحد- مذکر- عېش کونکے- دَ مزو ژوند تېرونکے- اوباش-

عیاشی:(عَ-یا-شی)اسم- واحد- مؤنث- فضول خرچی- عېش کونه- نفس پرستی- اوباشی-

عیال:(عَ-یال)اسم- جمع- مذکر- واړهٔ- زاړهٔ- ایل- اقربا- زاوزاد- بال بچ-

عیال دار:(عَ-یال-دار)صفت- واحد- مذکر- بال بچه دار- دَ ایل خاوند- ایل لرونکے-

عیان:(عَ-یان)صفت- واحد- مذکر- ښکاره- واضح- نمایان- ظاهر- څرګند- ډاګیز-

عېب:(عَېب)اسم- واحد- مذکر- نقص- کمزوری- نقصان- خرابی- خرابوالے- داغ-

عېب جوئی:(عَېب-جو-ئی)اسم- واحد- مؤنث- نقص راوېستنه- کمزوری ښکاره کونه- عېب لټونه-

عېب ژن:(عَېب- ژن)صفت- واحد- مذکر- عېب لرونکے- نقصانی- داغی-

عېب فاش:(عَېب-فاش)صفت- واحد- مذکر- عېب ښکاره کونکے- کمزوری څرګندونکے-

عېبی:(عَې-بی)صفت- واحد- مذکر- عېب لرونکے- نقص لرونکے- خراب- داغی- عېب ژن-

عید:(عید)اسم- واحد- مذکر- دَ مسلمانانو مذهبی جشن- اختر- دَ خوشحالی جشن- ډېره خوشالی-

عیدالاضحیٰ:(عی-دُل-اض-حا)اسم- واحد- مذکر- لوئ اختر- دَ قربانی اختر-

عیدالفطر:(عی-دُل-فِ-طر)اسم- واحد- مذکر- وړوکے اختر- کمکے اختر- پهٔ رمضان پسې اختر-

عیدمیلاد:(عید-می-لاد)اسم- واحد- مذکر- دَ حضور صلی الله علیه وآله وسلم دَ پیدائش دَ خوشالی ورځ-

عیسائی:(عی-سا-ئی)اسم- واحد- مذکر- دَ عیسیٰ علیه السّلام اُمت ته ځان منسوبونکے- مسیحی-

عسائیت:(عی-سا-ئی-یت)اسم- واحد- مذکر- دَ حضرت عیسیٰ علیه السّلام طرف ته منسوب دین-

عیسوی:(عیس-وی)صفت- دَ عیسیٰ علیه السّلام سره منسوب- دَ عیسویت سره منسوب-

عیسویت:(عیس-وی-یت)اسم- واحد- مذکر- عیسائیت-

عیوب:(عُ-یوب)اسم- جمع- مذکر- دَ عېب جمع- عېبونه- وګورئ عېب-

عېش:(عېشّ)اسم- واحد- مذکر- دَ مزو ژوند تېرونه- ارام- نفس پرستی-

عېش ماش:(عېش- ماشّ)اسم مرکب- واحد- مذکر- مزې چرچې - تېبس تېپاس- موج ماَج- بېغمی- عېش- نفس پرستی کونه- عېش معاش-

عېش معاش:(عېش-مَ-عاشّ)اسم مرکب- وُګورئ عېش ماش-

عېن:(عېنَ)صفتَ- متعلق فعل- (۱)بالکل- دغه شان- هوبهو- (۲)اسم- سترګه- چشم-

عېناً:(عِې-نَنّ)متعلق فعل- وُګورئ عېن-

عېن غېن:(عېنَ-غېنّ)اسم صفت- (۱)ډېر لږ فرق، څومره چې پهٔ عېن او غېن کښې وی- پهٔ یو شکل- پهٔ یو رنګ- (۲)هغه چې یوه سترګه کښې ئې ګُل وی-

عېنک:(عې-نک)اسم- واحد- مذکر- چشمې- عېنکې-

عېنکې:(عې-نِ-کې)اسم- جمع- مؤنث- وُګورئ عېنک-

عېنی:(عې-نی)صفت- لیدونکے- پهٔ خپلو سترګو لیدونکے-

---

ئ" (څی-رِل)، ې"(مې-ره-وِل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وُګورئ تشریحات صفحه ۱

غ:(غېن)حرف، دَ پښتو دَ حروف تهجی دَ پټی یو کم دېرشم او دَ عربی نولسم حرف چې دَ ابجدو لهٔ حسابه ئ قيمت يو زر دے-

غاب:(غاب)اسم- واحد- مذکر- (۱)خنګل- (۲)تال- قاب- تالے- جمع غابونه-

غابوړے:(غا-بو-ړے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم واښهٔ چې عموماً پهٔ غنمو کښې راخېژی او سور ګل کوی-

غاپ:(غاپ)اسمِ صوت- غپ- غپا- غپل- دَ سپی غپ-

غاپل:(غا-پل)مصدرِ لازم- دَ سپو اواز کول- غپل-

غاتره:(غات-ره)اسم- واحد- مؤنث- قچر- تچره- خچر- جمع غاترې-

غاټول:(غا-ټول)اسم- واحد- مذکر- غټول- غاټول- ګلِ لاله- غاټولے-

غاټولے:(غا-ټو-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غاټول-

غار:(غار)اسم- واحد- مذکر- وړه لويه سوړه- ړوغل- سمڅه- سمخ- ګاره-

غارت:(غا-رت)اسم- واحد- مذکر-(۱)لوټ مار- تالان- هغه حمله چې پهٔ دُشمن باندې دَ لوټ مار دَ پاره وکړے شی- (۲)مالِ غنيمت- (۳)صفت- تباه- برباد-

غارت ګر:(غا-رت-ګر)صفت- (۱)لوټ مار- لوټونکے- لوټ مار کوُنکے-

غارخلے:(غار-خ-لے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- لويه خُله لرونکے- لوئ خُلے- ويت خُلے- چينګ- ارت خُلے-

غارغار:(غار-غار)اسمِ صفت- سوری سوری- سوړې سوړې- ګارې ګارې- ګارې ګيټې- چې ډېر غارونه پکښې وی-

غارمهٔ:(غار-مهٔ)اسم- دَ نمر تاؤ- دَ نمر ګرمی- دَ نمر تودوالے- (۲)ټکنه غرمه- نېزه وار نمر-

غارندونه:(غا-رن-دو-نه)اسم- واحد- مذکر- يو قسم لويه سمسره- غارندونې- سمسارهٔ- غاروزينه-

غارندونې:(غا-رن-دو-نې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غارندونه-

غاروزينه:(غا-رو-زی-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غارندونه-

غاروې:(غا-رهٔ-وې)اسم- واحد- مؤنث- سمسره- سمسارهٔ-

غارے:(غا-رے)صفت- ډېرخورے- ګېډه ور- ډېر خوراک کوُنکے- غاری-

غاری:(غا-ری)صفت- واحد- مذکر- (۱)پهٔ غار کښې وُسېدونکے- (۲)خنګلی- (افغانستان)-

غاری:(غا-ری)اسمِ صفت- خوراکی- ډېرخور- ډېرخورے- هغه کس چې پهٔ ډېر خوراک کولو هُم موړ نهٔ شی- غارے-

غاړبندے:(غاړ-بن-دے)صفت- (۱)هغه څوک چې دَ غاړې نه تړلے شوے وی- (۲)ګرفتار-

غاړبوژن:(غاړ-بو-ژن)صفت- خاربنتی- دَ پښو پهٔ ګروتونو يا دَ غوږونو شا ته دَ خارښ مريض-

غاړبوژنېدل:(غاړ-بو-ژهٔ-نې-دل)مصدرِ لازم- دَ خارښ مرض لګېدل- دَ پښو پهٔ ګروتونو يا دَ غوږونو شا ته دَ خارښ مرض لګېدل-

غاړبوژنېدن:(غاړ-بو-ژهٔ-نې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ غاړبوژنېدل-

غاړبوژنېدنګ:(غاړ-بو-ژهٔ-نې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غاړبوژنېدل-

غاړبوژنېدنه:(غاړ-بو-ژهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غاړبوژنېدل-

غاړبوژنېدونکے:(غاړ-بو-ژهٔ-نې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غاړبوژنېدونکی- مؤنث غاړبوژنېدونکې- وګورئ غاړبوژنېدل-

غاړبوژنېدهٔ:(غاړ-بو-ژهٔ-نې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ غاړبوژنېدل-

غاړپټی:(غاړ-پ-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ غاړکی-

غاړکی:(غا-ړ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)غاړه کی-(۲)پټی- پټه- هار- دَ غاړې پټی- دَ سپی يا بل ساتلی ځناور دَ غاړې پټه- (۳)ګردنی- دَ کارتوسو دَ ايښودلو پټی چې خلق يې پهٔ غاړه کوی- (۴)يو قسم پسول- اوړی-

غاړل:(غا-ړل)مصدرِ متعدی- نغښتل- نغاړل- نغړدل- نغړل-

غاړلے:(غا-ړهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع غاړلی- مؤنث غاړلې- وګورئ غاړل-

غاړن:(غا-ړن)حاصلِ مصدر- وګورئ غاړل-

غاړنګ:(غا-ړنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غاړل-

غاړنه:(غا-ړهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غاړل-

غاړو:(غا-ړو)صفت- هغه سړے چې څټ يې وړد وی- وږدڅټے- وړدغاړے-

غاړونکے:(غا-ړون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غاړونکی- مؤنث غاړونکې- وګورئ غاړل-

غاړه:(غا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څټ- (۲)مری- (۳)کناره- (۴)حاشيه- (۵)ټوقه- مسخره- (۶)ګرېون- (۷)زکام- (۸)خوش اوازی- (۹)سُر- دَ ژړا ستانېنه- (۱۰)دَ وښو يا کيا دومره مقدار چې څڼګ ته راچولے شی- (۱۱)خوا- لور- (۱۲)دَ ژرندې دَ ډول دَ پاسه اړولے شوې دانې- (۱۳)سندره-

غاړه بسته:(غا-ړه-بس-ته)اسمِ صفت- (۱)ملاتړلے- تيار- وفادار- لاس پهٔ نامه- غاړه نښتے- غاړه تړلے-

غاړه پيڅه:(غا-ړه-پی-څه)اسمِ مرکب- (۱)غاړه مورګه- غاړې پيڅکې- ډډه- مورګه- څنډه- ګټ- ګوښه- (۲)انجام- (۳)حد- پوله- اخير- انتها-

غاړه غاړه:(غا-ړه-غا-ړه)اسمِ صفت- څنډه څنډه- ډډه ډډه-

غاړه غټه:(غا-ړه-غ-ټه)صفت/متعلقِ فعل- وګورئ غاړه غټی-

غاړه غټی:(غا-ړه-غ-ټی)صفت/متعلق فعل- هغه چې پهٔ خپلو کښې يې غاړه ورکړې وی- غاړه غړی- سينه پهٔ سينه- غاړه غجی- غاړه پهٔ غاړه-

غاړغجی:(غا-ړه-غ-جی)صفت/فعلق فعل- وګورئ غاړه غټی-

غاړه غړی:(غا-ړه-غ-ړی)صفت/متعلقِ فعل- وګورئ غاړه غټی-

غاړه کی:(غا-ړه-کی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غاړکی-

غاړه ګری:(غا-ړه-ګهٔ-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ سندرو ويلو فن- ګلوکاری-

غاړه ګرے:(غا-ړه-ګهٔ-رے)صفت- سندرغاړے- ګلوکار-

غاړه مورګه:(غا-ړه-مور-ګه)اسمِ مرکب- وګورئ غاړه پيڅه-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

غاړيت:(غا-ړيت)اسم- واحد- مذکر- چل- فريب- دوکه- ټګي-

غاړيک:(غا-ړيک)اسم- واحد- مذکر- پالنګ- غاړيکې-

غاړيکې:(غا-ړي-کې)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غاړيک-

غاړې:(غا-ړې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)سندرې- (۲- صفت)ناشونې-

غاړې غرونه:(غا-ړې-غرو-نه)اسم- جمع- دشت او بيابان- لوړې ژورې-

غاز:(غاز)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لويه مرغابي- (۲)براس- (۳)پمبه- پومبه- پنبه-

غازه:(غا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ملا د مهوکي پورته حصه- (۲)پوډر- سرخي-

غازي:(غا-زي)صفت- (۱)جنګي- د کافرانو سره جنګېدونکې- (۲)زړه ور- بهادر- تورزن-

غاسول:(غا-سول)اسم- واحد- مذکر- يو بوټې چې په جامو وينځلو کښې پکاريږي- زمی- زومی- بروسه-

غاشو:(غا-شو)اسم- واحد- مؤنث- بوروا- د ترکاری ابه-

غاشوله:(غا-شو-له)اسم- واحد- مؤنث- د خرولې ونه- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ خروله-

غاښ:(غاښ)اسم- واحد- مذکر- په خله کښې د خوراک خوړلو يا چيچلو اندام- جمع غاښونه-

غاښ پوهان:(غاښ-پو-هان)صفت- د غاښونو ډاکټر- د غاښونو معالج- پښتست- (افغانستان)-

غاښ ټومبنې:(غاښ-ټوم-بڼ-نې)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې د غاښونو نه پرې خيرې لرې کولې شي- خلال-

غاښ سکوې:(غاښ-سک-وې)اسم- جمع- مذکر- هغه څيز چې په غاښونو کښې انښتې وي- نيله- غاښ ښنګرې-

غاښ ښنګرې:(غاښ-ښنګ-ګڼ-رې)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غاښ سکوې-

غاښ ماتې:(غاښ-ما-تې)اسم- واحد- مذکر- جنګ جګړه- يو بل وهنه-

غاښو:(غا-ښو)صفت- لوئ غاښونه لرونکې- داړينګ- داړو- داړه ور- غاښور-

غاښ وتلې:(غاښ-وه-تڼ-لې)صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې غاښونه ې وتلي وي-

غاښور:(غا-ښ-ور)صفت- (۱)وګورئ غاښو- مؤنث غاښوره- (۲)اسم- واحد- مؤنث- يوه آله چې زمکه پرې هواروله شي- مانج-

غاښي:(غا-ښي)اسم- واحد- مؤنث- درې غاښې- درې ښاخي- ښاخې-

غاښيز:(غا-ښيز)صفت- غاښونه لرونکې-

غاښې:(غا-ښې)اسم- واحد- مذکر- (۱)د غرۀ څوکه- (۲)لوړ غر چې ختل پرې ګران وي- (۳)د غرۀ د پاسه لار-

غاصب:(غا-صب)صفت- د چا په حق په زور قبضه کونکې- شوکونکې-

غافل:(غا-فل)اسم صفت- واحد- مذکر- بې پروا- ناپوهه- ناخبره- سست پست- ناراسته- مؤنث غافله- جمع غافلان-

غاکل:(غا-کل)مصدر لازم- غکل- د چېلو بې بې کول- وګورئ غکل-

غال:(غال)اسم- واحد- مذکر- دوکه- په لوبو کښې ټګي- کاجي- قالي-

غال:(غال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غال مغال-

غالب:(غا-لب)صفت- طاقتور- کامياب- غلبه لرونکې- غلبه موندونکې-

غالب:(غا-لب)اسم- واحد- مذکر- قالب- کالبوت- جمع غالبونه-

غالباً:(غا-ل-بن)متعلق فعل- زيات تر- تقريباً- اغلباً-

غالبوزک:(غال-بو-زک)اسم- واحد- مذکر- يو خنګلی بوټې او د هغې سور سپين ګل-

غالبوزه:(غال-بو-زه)اسم- واحد- مؤنث- ډمبره- بمبره- ډنډاره-

غالبوزی:(غال-بو-زي)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ګنډ- ګنډون- نقش دار ګنډ- غاړه-

غال بول:(غال-بول)اسم مرکب- غلبه- غلبوله- الغاو تلغاو- غالمغال-

غالمغال:(غال-م-غال)اسم- واحد- مذکر- شور او شر- هايُ هايُ- غال- غال بول-

غالوشه:(غا-لو-شه)اسم- واحد- مؤنث- لوشونې- د غوا مېښې د پيو د اخستلو لوښې-

غاله غوله:(غا-له-غو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غال بول-

غالي:(غا-لي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)په لوبو کښې دوکه کونه- لوبه کښې غلتی کونه- کاجي- ټګي- قالي- (۲)صفت- وګورئ غاليژن-

غاليچه:(غا-لی-چه)اسم- واحد- مؤنث- قالينچه- يو قسم ګلدار قالين- غاليکې-

غاليژن:(غا-لی-ژن)صفت- کاجي کن- ټګژن- لوبه کښې ټګي کونکې- غالي-

غاليکې:(غا-لی-کې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غاليچه-

غالي:(غا-لي)اسم- واحد- مؤنث- قالين- قالينچه-

غانټول:(غان-ټول)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګورئ غاټول- نباتاتی نوم د بل بنس ليليُشس (BULBOUS LILIACEOUS) د خاندان يو بوټې-

غانج:(غانج)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوچانې-

غاندل:(غان-دل)مصدر متعدي- بدرد وئيل- غندل- بد وئيل- مذمت کول-

غاندلې:(غان-دڼ-لې)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غاندلي- مؤنث غاندلې- وګورئ غاندل-

غاندن:(غان-دن)حاصل مصدر- وګورئ غاندل-

غاندنګ:(غان-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غاندل-

غاندنه:(غان-دڼ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غاندل-

غاندونکې:(غان-دون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غاندونکي- مؤنث غاندونکې- وګورئ غاندل-

غانده:(غان-ده)اسم- واحد- مؤنث- د نفرت او حقارت خبره- داسې خبرې چې پکښې د نفرت آثار ښکاره وي- د سپکاوی خبره-

غانډو:(غان-ډو)صفت- (۱)بې غيرته- بې همته- بې ننګه- (۲)په ګونټو

تلونکے- هغه څوک چې په کونتو ځی- (۲)کانړو- کنی- مفعول-

غاړ:(غاړ)اسم- واحد- مذکر- شور او فریاد- غوغا- الغاړ تلغاړ- شور او غوغا-

غاړچی:(غاړ-چی)صفت- دربان- دربانچی- دَ شپې څوکیدار چې دَ بېداری اوازونه کوی- څوکیدار- دروازه مان-

غاور:(غا-ور)اسم صفت- (۱)مغرور- غرور کوُنکے- متکبر- (۲)پاړه- زړهٔ ور-

غاړرسی:(غاړ-ره-سی)اسم- واحد- مؤنث- انصاف غُښتنه- فریاد رسونه- (۲)دَ غاړرسے جمع- وګورئ غاړرسے-

غاړرسے:(غاړ-ره-سے)صفت- واحد- مذکر- شکایت کوُنکے- فریادی- انصاف غُښتونکے-

غاوره:(غا-وَ-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث/مذکر- وګورئ غاور-

غاړغړو:(غاړ-غه-ړو)اسم- واحد- مؤنث- بده ورځ- هیبت-

غاړناک:(غاړ-ناک)صفت- فریاد کوُنکے- شور کوُنکے- هغه څوک چې په شور غوغا فریاد کوی-

غاوول:(غا-وَ-وَل)مصدر متعدی- دردول- تکلیف ورکول- ازارول- عذابول-

غاوون:(غا-وَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غاوول-

غاوونکے:(غا-وَ-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غاوونکی- مؤنث غاوونکې- وګورئ غاوول-

غاوونګ:(غا-وَ-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غاوول-

غاوونه:(غا-وَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غاوول-

غاوے:(غا-وے)صفت- فریادی- مظلوم-

غاوېدل:(غا-وې-دَل)مصدر لازم- تکلیفېدل- دردېدل- ازارېدل- عذابېدل-

غاوېدن:(غا-وې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غاوېدل-

غاوېدنګ:(غا-وې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غاوېدل-

غاوېدنه:(غا-وې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غاوېدل-

غاوېدونکے:(غا-وې-دَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غاوېدونکی- مؤنث غاوېدونکې- وګورئ غاوېدل-

غاوېدهٔ:(غا-وې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غاوېدل-

غامو:(غا-مُو)صفت- غوبه- ګووارچې- څاروی ساتونکے-

غائب:(غا-ئب)اسم صفت- واحد- مذکر- غیر موجود- په نظر نهٔ راتلونکے- غیب- پناه- مؤنث غائبه-

غائبانه:(غا-ء-با-نه)صفت/متعلق فعل- پسِ شا- دَ غائبېدو حالت- غیبی-

غائبول:(غا-ء-ب-وَل)مصدر متعدی- پټول- پناه کول-

غائبون:(غا-ء-ب-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غائبول-

غائبونکے:(غا-ء-ب-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غائبونکی- مؤنث غائبونکې- وګورئ غائبول-

غائبونګ:(غا-ء-ب-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غائبول-

غائبونه:(غا-ء-بَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غائبول-

غائبېدل:(غا-ء-بې-دَل)مصدر لازم- پټېدل- غیر موجود کېدل- پناه کېدل-

غائبېدن:(غا-ء-بې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غائبېدل-

غائبېدنګ:(غا-ء-بې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غائبېدل-

غائبېدنه:(غا-ء-بې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غائبېدل-

غائبېدونکے:(غا-ء-بې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غائبېدونکی- مؤنث غائبېدونکې- وګورئ غائبېدل-

غایت:(غا-یَت)اسم- واحد- مذکر- (۱) غرض- مطلب- مقصد- (۲)انجام- انتها-

غایٔ لمې:(غایٔ-لهٔ-مې)اسم- واحد- مؤنث- غلنه- غُلنکې-

غبار:(غُ-بار)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دوړه- ګرد- (۲)زړهٔ بداوے- دُشمنی-

غباړه:(غُ-با-ړه)اسم- واحد- مؤنث- ګونګټې- مرغټانه- غوزاړے-

غبانده:(غ-بان-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ طاعون-

غبرګ:(غبرګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)جوړه- دوه سره یوځایٔ- برغ- بغرګ- (۲)جُخت- نژدې-

غبرګلون:(غبر-ګلون)اسم- واحد- مذکر- برغدون- دوغبرګه کونه- غبرګون- غبرګوالے-

غبرګول:(غبر-ګهٔ-وَل)مصدر متعدی- (۱)یو په دوه کول- (۲)دوه څیزه یو ځایٔ کول- (۳)رانغښتل-

غبرګوالے:(غبرګ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ غبرګلون- (۲)کوروالے- جُفتی- (افغانستان)-

غبرکولے:(غَبَر-کو-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)څینور- دَ اسمان دَ درېم برج نوم- جوزا- (۲)دَ شمسی کال درېمه میاشت چې دَ ۲۱ مئی نه تر ۳۰ جون پورې وی- (افغانستان)-

غبرګون:(غَبَر-ګون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غبرګلون-

غبرګون:(غَبَر-ګَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غبرګول-

غبرګونګ:(غَبَر-ګَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غبرګول-

غبرګونه:(غَبَر-ګَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غبرګول-

غبرګونے:(غَبَر-ګو-نے)صفت/متعلق فعل- (۱)غبرګ- (۲)غبرګېدو په حالت کښې- برغونے- (۳)غبرګوالے- غبرګلون- غبرګونه- جمع غبرګونی- مؤنث غبرګونې- (افغانستان)-

غبرګوُنکے:(غبر-ګَ-وَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غبرګوُنکی- مؤنث غبرګوُنکې- وګورئ غبرګول-

غبرګه:(غَبَر-ګه)صفت- (۱)هغه ښځه چې جوړه بچی یٔ شوې وی- (۲)اسم- لپه- (۳)دَ دوږ غنډیو په مینځ کښې خوړ- دَ دوږ غرونو تر مینځه دَ اُبو لار-

غبرګې:(غَبَر-ګې)اسم- دَ اسونو یا خرونو په پوپونو تګ- ترپکې- دانګوچې-

غبرګېدل:(غَبَر-ګې-دَل)مصدر لازم- (۱)برغېدل- (۲)واپس راتلل- (حقارتاً)-

"زبر" (غ-ـبهٔ-ره)، "زورکے" (شل)، "زېر" (کـ-تـاب)، "پېش" (نو-کـا-ره)، "جزم" (شکوړ)، "ځ" (زَ-ړه)، "هٔ" (پو-بې-دهٔ)

غبرګېدن:(غَبَر-ګې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غبرګېدل-

غبرګېدنګ:(غَبَر-ګې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غبرګېدل-

غبرګېدنه:(غَبَر-ګې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غبرګېدل-

غبرګېدونکے:(غَبَر-ګې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غبرګېدونکي- مؤنث غبرګېدونکې- وګورئ غبرګېدل-

غبرګېدهٔ:(غَبَر-ګې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ غبرګېدل-

غبرګيني:(غَبَر-ګي-ني)صفت- جوړنيز- دوه مخيز- دَ غبرګينے جمع- (افغانستان)-

غبرګينے:(غَبَر-ګي-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- جمع غبرګونے- جوړه- برغ- يوځاي- (افغانستان)-

غبغب:(غب-غب)اسم- واحد- مذکر- دَ زنې دَ لاندې غوښه- دَ زنې دَ لاندې زوړنده غوښه چې دَ حسن نښه ګڼلے کيږي- چاه زنخ- جج- (شاعري)(فارسي)-

غبن:(غه-بن)اسم- واحد- مذکر- خيانت- دوکه- پهٔ فريب مال وهنه- غبن- (عربي)-

غبن:(غه-بن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غبن-

غبی:(غَ-بي)صفت- هغه بنيادم چې ذهن ئې تېز کار نهٔ کوي- نالائق- کُندذهن-

غپ:(غَپ)اسم صوت- واحد- مذکر- دَ سپي اواز- دَ غپېدو اواز-

غپا:(غَ-پا)اسم صوت- دَ سپي مسلسل اوازونه- دَ سپي مسلسل غپېدنه- دَ سپي اواز- غپهار- غپهارے- غپار- غپارے-

غپار:(غَ-پار)اسم صوت- واحد- مذکر- وګورئ غپا-

غپارے:(غَ-پا-رے)اسم صوت- جمع- مذکر- وګورئ غپا-

غپاند:(غَ-پاند)صفت- غپندے- هغه سپے چې هر وخت غاپي- همېشه غپېدونکے- غپاندے- غپند- غپن- غپندوکے-

غپاندے:(غَ-پان-دے)صفت- وګورئ غپندے-

غپ غپ:(غپ-غپ)اسم صوت- وګورئ غپ-

غپل:(غَ-پَل)مصدر لازم- وګورئ غپېدل سره دَ لوازماتو-

غپن:(غَ-پَن)صفت- وګورئ غپاند-

غپند:(غَ-پَند)صفت- وګورئ غپاند-

غپندوکے:(غَ-پَن-دُو-کے)صفت- وګورئ غپاند-

غپندے:(غَ-پَن-دے)صفت- وګورئ غپاند-

غپول:(غَ-پَ-وَل)مصدر متعدي- (۱)سپے غپېدو ته پاروِل- سپے چېړل- (۲)لهٔ چا بکواس وبستل- پهٔ چا بې فائدې خبرې کول-

غپولے:(غَ-پَ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غپولي- مؤنث غپولې- وګورئ غپول-

غپون:(غَ-پَ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غپول-

غپونکے:(غَ-پَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غپونکي- مؤنث غپونکې- وګورئ غپول-

غپونګ:(غَ-پَ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غپول-

غپونه:(غَ-پَ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غپول-

غپهار:(غَ-پَ-هار)اسم صوت- واحد- مذکر- وګورئ غپا-

غپهارے:(غَ-پَ-ها-رے)اسم صوت- واحد- مذکر- جمع وګورئ غپا-

غپېدل:(غَ-پې-دَل)مصدر لازم- غپل- (۱)دَ سپي لهٔ خُلې دَ غپ غپ اواز وتل- غپاکول- (۲)بې فائدې خبرې کول- بکواس کول-

غپېدلے:(غَ-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غپېدلي- مؤنث غپېدلې- وګورئ غپېدل-

غپېدن:(غَ-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غپېدل-

غپېدنګ:(غَ-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غپېدل-

غپېدنه:(غَ-پې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غپېدل-

غپېدونکے:(غَ-پې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غپېدونکي- مؤنث غپېدونکې- وګورئ غپېدل-

غپېدهٔ:(غَ-پې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ غپېدل-

غټ:(غټ)صفت- واحد- مذکر- (۱)لوئ- ځُرب- (۲)مشر- (۳)پېړ-

غُټ:(غُټ)صفت- (۱)غَن- اَن- بېخي- قطعي- صاف- ټول- صفا- (۲)مخامخ- (دَ کتلو صفت)-

غټباز:(غټ-باز)صفت- (۱)لافې- غټې غټې ويشتونکے- کټه باز- لوئ مار- لافزن- پوزن- باټو- لافو- لاپې- (۲)دَ باز يو قسم-

غټبازي:(غټ-با-زي)اسم- واحد- مؤنث- دوړې- غټې غټې خبرې- لافې کونه- لوپړې دوپړې ويشتنه-

غټ بازيګر:(غټ-با-زي-ګر)صفت- لاپو- لافو- لاپې-

غټ پټ:(غټ-پټ)صفت- واحد- مذکر- غټ کټ- ځُرب- غټ- تکړه- تيار- چاق- لوئ- ټنډ- پېرزيات غټ-

غټ پربکړے:(غټ-پرې-کهٔ-ړے)صفت- واضح (بيان)- واضحه (وينا)-

غټ توب:(غټ-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ غټېدو حالت- غټوالے- غټتيا-

غټتيا:(غټ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غټتوب-

غټ جوار:(غټ-جو-وار)اسم- واحد/جمع- مذکر- يوه غله او دَ مغې بوټے- مکئي- نباتاتي نوم مولکس سورګم (HOL CUS SORGUM)-

غټ خټے:(غټ-خې-ټے)صفت- غټه خټه لرونکے- چاټو- چاټا-

غټرے:(غه-ټهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- غنهارے- غندورے- جمع غټرې-

غټ سترګے:(غټ-سټر-ګے)صفت- (۱)غټې غټې سترګې لرونکے- (۲)بې حيا- شوخ چشمه-

غټ سرے:(غټ-سه-رے)صفت- (۱)غټ سر لرونکے- (۲)بېوقوف-

غټ غټ:(غټ-غټ)اسم صفت- (۱)لوئ لوئ- (۲)دَ سر سر- (۳)ښکاره ښکاره- (۴)ګران ګران- (۵)اَهم اَهم-

ئ (ځي-رل)، ې (هې-ره-وَل)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

مؤنث غورزېدونکې- وګورئ غورخېدل-

غورس:(غورس)صفت- سخت- ټينګ- مضبوط- نيغ- ټُرس-

غورسول:(غو-رهٔ-س-وَل)مصدر متعدی- مضبوطول- ټينګول- نيغول- ټُرسول-

غورسون:(غو-رهٔ-س-وَن)حاصل مصدر- وګورئ غورسول-

غورسونکے:(غو-رهٔ-س-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غورسونکي-
مؤنث غورسونکې- وګورئ غورسول-

غورسونګ:(غو-رهٔ-س-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ غورسول-

غورسونه:(غو-رهٔ-س-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غورسول-

غورسېدل:(غو-رهٔ-سې-دَل)مصدر لازم- ټينګېدل- مضبوطېدل- نيغېدل- ټُرسېدل-

غورسېدن:(غو-رهٔ-سې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ غورسېدل-

غورسېدنګ:(غو-رهٔ-سې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ غورسېدل-

غورسېدنه:(غو-رهٔ-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غورسېدل-

غورسېدونکے:(غو-رهٔ-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع
غورسېدونکي- مؤنث غورسېدونکې- وګورئ غورسېدل-

غورسېدهٔ:(غو-رهٔ-سې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب
صيغه- وګورئ غورسېدل-

غورغښت:(غور-غښت)اسم- واحد/جمع- مذکر- غورغښت- لهولعب- فضول او
بې خايه خبرې-

غورغوړې:(غور-غو-ړې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بوړبوړې- غُلغُلې-
بړبوړکې- بوړبوړکې-

غورغوشتې:(غور-غوش-تې)اسم- جمع- مؤنث- دانګې- ترپکې- دانګوچې-
منډې ترړې- فضول او بې خايه ټوپونه- خرڅکې وهنه- دانګونه او ټوپونه
وهنه-

غورغوښتے:(غور-غوښ-تے)اسم- واحد- مذکر- اړوښتے- دَ بادام وُنه-
نباتاتی نوم امګډېلس کميونس ايل (AMYGDALUS COMMUMIS L)-

غورغې:(غور-غې)اسم- واحد- مؤنث- کړۍ- حلقه- دائره-

غورکمانه:(غور-که-ما-نه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غُرکمانه-

غورکې:(غور-کې)اسم صوت- (۱)دَ پيشو خرړاړے- (۲)اسم- واحد- مؤنث- دَ
نفرت او پېغور خبرې- غُرکې-

غورګ:(غورګ)اسم- واحد- مذکر- غوړګه- غورګه- غُرګه- کچه ډنډر- غندل-

غورلنډسه:(غور-لَن-ډهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اور لويه شُغله- غُرلنډسه-

غورله:(غور-له)صفت- لرې- عام طور سره دَ نيا نيکهٔ دَ صفت پهٔ طور-

غورله انا:(غور-له-أ-نا)اسم- واحد- مؤنث- غُره نيا-

غورليزه:(غور-لی-زه)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ زېړ رنګ لرونکے يو ګل-

غورمچ:(غور-مچ)اسم- واحد- مذکر- غټ مچ- غوباړے- غُرمچ-

غورمشتې:(غور-مش-تې)اسم- جمع- مؤنث- غُرمشتې- غورمشکې- پرزونې-
انګتې- انډې- مستې- خرمستې- غوبمې- غوبمډ-

غورمکه:(غور-م-که)اسم- واحد- مؤنث- ګرمکه- پهٔ اوړی کښې دَ ګرمۍ لهٔ
کبله پهٔ بدن راوتونکې نرۍ دانې چې پهٔ ګڼ شمېر کښې راخيژی- جمع
غرمکې-

غورمنه:(غور-م-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ناشپاتی دَ قسم يوه وُنه او دَ مغې
مېوه- ناکه- ناکه- نباتاتی نوم دَ پائرس پېشيا بچ (PIRUS PASHIA BACH) دَ
خاندان يوه وُنه-

غورمنه:(غور-مَ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غورمنه-

غورمه:(غور-مه)اسم- واحد- مؤنث- قورمه-

غورمه واله:(غور-مه-وا-له)صفت- قورمه خرڅونکے-

غورندی:(غور-رَن-دی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ خرخوړی-

غور نيکهٔ:(غور-نی-که)اسم- واحد- مذکر- تر نيکه- دَ نيکهٔ پلار يا نيکهٔ- غر
نيکهٔ-

غورنداز:(غو-رن-داز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غورنډاز-

غورانداز:(غو-رن-داز)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو پرپرکے- برلندے-
غورنداز-

غوروچېدل:(غورو-چې-دَل)مصدر لازم- دَ غرمبا اواز پيدا کول- غروچېدل-

غوروچېدن:(غورو-چې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ غوروچېدل-

غوروچېدنګ:(غورو-چې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ غوروچېدل-

غوروچېدنه:(غورو-چې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوروچېدل-

غوروچېدونکے:(غورو-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع
غوروچېدونکي- مؤنث غوروچېدونکې- وګورئ غوروچېدل-

غورول:(غوهٔ-رَ-وَل)مصدر متعدی- منتخب کول- ټاکل- (افغانستان)-

غوره:(غو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ مستۍ پهٔ وخت دَ اوښ برړېدنه-
(۲)لاښې شافې- غُره-

غوره:(غو-ره)اسم- واحد- مؤنث- يوه سبزی چې عام طور سره کچه خوړے
شی-

غوره:(غو-ره)اسم- واحد- مؤنث- کوټ- نوې رارسېدلې مېوه-

غوره:(غوه-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)خوښ- ښهٔ- بهتر- (۲)منتخب-
ټاکلے-

غوره ټپه:(غو-ره-ټه-په)متعلق فعل- ناګهانه- ناڅاپه- پهٔ بې خبری کښې-
غُره ټپه-

غوره چوڼ:(غوه-ره-چُوڼ)صفت- چوڼ شوے- منتخب شوے- دَ ښهٔ څيز
انتخاب-

غوره ګل:(غو-ره-ګل)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وُچه لونده-

غوره لم:(غو-ره-لَم)اسم- واحد- مذکر- دَ غرهٔ يو بوټے چې لهٔ جرړو نه يُ دَ
زخم دَ پاره دارو جوړولے شی-

غوره نيا:(غو-ره-نيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غورله انا-

غورياشه:(غور-يا-شه)اسم- واحد- مؤنث- پلواښهٔ- غرونډے-

غوريالے:(غور-يا-لے)صفت- (۱)دَ مرى دَ غر مريض- غرپالے- (۲)لاهو-

زبر (غ-بهٔ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زبر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ه (ز-ړه)، هٔ (پو-بې-دهٔ)

لاپو- لاپړ- پوتي ویشتونکے-

غوریانے:(غور-یا-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ غنم کچه ورے-

غوریجه:(غو-ری-جه)اسم- واحد- مؤنث- خشاکی لرګے- یو قسم دَ سپږلو لرګے-

غوریخ:(غوه-ریخ)صفت- غوره- ښهٔ- بهترین-

غورېدل:(غو-رې-دل)مصدر لازم- وګورئ غرېدل-

غورېدل:(غوه-رې-دل)مصدر لازم- پلنېدل- پړسېدل-

غورېدلے:(غو-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غورېدلی- مؤنث غورېدلې- وګورئ غورېدل-

غورېدلے:(غوه-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غورېدلی- مؤنث غورېدلې- وګورئ غورېدل-

غورېدن:(غو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ غرېدل-

غورېدن:(غوه-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ غورېدل-

غورېدنګ:(غو-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غرېدل-

غورېدنګ:(غوه-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غورېدل-

غورېدونکے:(غو-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غورېدونکی- مؤنث غورېدونکې- وګورئ غرېدل-

غورېدونکے:(غوه-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غورېدونکی- مؤنث غورېدونکې- وګورئ غورېدل-

غورېدهٔ:(غو-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غرېدل-

غورېدهٔ:(غوه-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غورېدل-

غوریزه:(غو-ری-زه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم ازغن بوټے چې نری نری غنې زیړ رنګه ګل او وړې پانې لری- عموماً دَ پسرلی موسم کښې کیږی- غوریژه-

غوریژ:(غو-ریژ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اشول ۱-

غوریژه:(غو-ری-ژه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوریزه-

غوری:(غو-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مجمه- غړی-

غورے:(غوه-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- انتخاب-

غورے:(غو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- مؤنث غوری- دَ غور لرونکے مریض- هغه څوک چې مری ئې دَ غور په وجه پړسېدلې وی- غړے-

غوړ:(غوړ)صفت- (۱)روغن لرونکے- (۲)مالدار- دولتمند-

غوړ:(غوړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غړ/غور-

غوړ:(غوړ)اسم- واحد- مذکر- لهٔ کچو وازدې یا نورو داسې څیزونو نه حاصل شوے روغن-

غوړاڅکه:(غو-ړاس-که)اسم- واحد- مؤنث- غوړاڅکه- نباتاتی نوم ډوډونیا وسکوسه ایل [DODONAEA VISCOSA L]-

غوړاڅکے:(غو-ړاڅ-کے)اسم- واحد- مذکر- یو غرنیز بوټے چې پانې ئې نری نری وی-

غوړاشه:(غو-ړا-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ تنہی سورے- غوړیاشه- (۲)پلواښهٔ-

غوړانخه:(غو-ړان-خه)اسم- واحد- مؤنث- لوګڑنه لمبه- لوګے لرونکے غرغنډه- لمبه-

غوړانکه:(غو-ړان-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ نمر پلوشه-

غوړانکے:(غو-ړانګ-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم غرنیز بوټے-

غوړاوو:(غوه-ړا-وو)صفت- خوشامدکر- چاپلوس- چپړوس- غوړبے-

غوړب:(غو-ړب)اسم- واحد- مذکر- غړپ- کوټ- غوړپ-

غوړبېژن:(غوړ-بې-ژن)صفت- لږ شان غوړ- معمولی غوړ-

غوړبے:(غو-ړ-بے)صفت- خوشامندکر- خوشامدکر- چالاک-

غوړبی:(غو-ړ-بی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پېچک-

غوړپ:(غو-ړپ)اسم- واحد- مذکر- غوړپ- غړپ- کوټ-

غوړپړ:(غوړ-پړ)صفت- (۱)بېخی غوړ- بالکل غوړ- (۲)ترو تازه- ښانسته-

غوړپکه:(غوړ-پ-که)اسم- واحد- مؤنث- حادثه- سمدستی واقعه- جمع غوړپکې-

غوړپکی:(غوړ-پ-کی)اسم- واحد- مؤنث- پړق- ځپېره- تتوړه-

غوړپل:(غوړه-پل)مصدر متعدی- کوټل- شومل- غړپول-

غوړپلے:(غوړه-پهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غوړپلی- مؤنث غوړپلې- وګورئ غوړپل-

غوړپن:(غوړه-پن)حاصل مصدر- وګورئ غوړپل-

غوړپنګ:(غوړه-پنګ)حاصل مصدر- وګورئ غوړپل-

غوړپنه:(غوړه-پهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوړپل-

غوړپول:(غوړه-په-ول)مصدر متعدی- پهٔ غړپ غړپ ښکل- شومل- غوړپل-

غوړپون(غوړه-ړه-په-ون)حاصل مصدر- وګورئ غوړپول-

غوړپونکے:(غوړه-پون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوړپونکی- مؤنث غوړپونکې- وګورئ غوړپل-

غوړپونکے:(غوړه-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوړپونکی- مؤنث غوړپونکې- وګورئ غوړپول-

غوړپونګ:(غوړه-په-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غوړپول-

غوړپونه:(غوړه-په-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوړپول-

غوړپیش:(غوړ-پیش)اسم- واحد- مذکر- تېزې خبرې- غصه- قهر-

غوړپېدل:(غوړه-پې-دل)مصدر لازم- کوټل کېدل- پهٔ غړپ غړپ ښکلے کېدل-

غوړپېدن:(غوړه-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ غوړپېدل-

غوړپېدنګ:(غوړه-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غوړپېدل-

غوړپېدنه:(غوړه-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوړپېدل-

غوړپېدونکے:(غوړه-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع

ئ" (ښی-زل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

غوړپېدونکی- مؤنث غوړپېدونکې- وګورئ غوړپېدل-

غوړپېدهٔ:(غوړه-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غوړپېدل-

غوړپېکے:(غوړ-پې-کے)صفت- خوان ملک چې دَ سر وېښتهٔ يُ ساتلی وی- ځټوکمار-

غوړتپے:(غوړ-ته-پے)اسم- واحد- مذکر- هغه غوړ داغ چې دَ ښوروا دَ پاسه ګرځی- سرسرے- سرسر- بوټځورے- پځرے- ستوری ستوری-

غوړتړ:(غوړ-تړ)صفت- غټ پټ- څرب- څورب- صحتمند- تروتازه-

غوړخکه:(غوړ-خه-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ اور شغله- دَ اور لمبه- غړخانګه-

غوړخولے:(غوړ-خو-لے)صفت- دَ خوراک شوقین- ګېډه ور- غوړخلے-

غوړدانګه:(غوړ-دانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غړدانګه-

غوړزاښے:(غوړ-زا-ښے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم کورنی مټانی-

غوړزکے:(غوړ-ز-کے)اسم- واحد- مذکر- وازده- وازګه- چربی-

غوړزنګ:(غوړ-زنګ)اسم- شکنه- ساړه توده- ښور واکی-

غوړزون:(غوړ-زون)اسم- واحد- مذکر- غوړوالے- غوړ-

غوړژبتیا:(غوړ-ژب-تیا)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ ژبه ځټل کونه- چل ول- مکر-

غوړژبے:(غوړ-ژهٔ-بے)صفت- چې پهٔ ژبه ځټل کوی- مکرژن- خوږژبان- خوږژبے-

غوړسترکے:(غوړ-سټر-کے)صفت- دَ ښانسته سترګو والا-

غوړ سړے:(غوړ-سه-ړے)صفت- مالداره-

غوړسکه:(غو-ړس-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ لوګی یا وربخ مرغوله- غړوسکه- غورشکه- (۲)ګڼ فصل- (افغانستان)-

غوړشکه:(غوړ-شهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ګڼه ګوڼه- ډېره ګڼه-

غوړکے:(غوه-ړه-کے)اسم تصغیر- (۱)شنه څانګه- لښته- (۲)دَ بوټو یو مرض چې پهٔ پاڼو لګی او وچوی يُ- (۳)یو قسم بوټے چې پهٔ ونو خیژی- کنړے- جنجړی- ډېرختونے-

غوړګه:(غوړ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱) دَ ونې یا دَ بوټی دَ څانګې پهٔ سر کښې نوې ټوکېدلې پاڼې چې لا پوره خورې شوې نهٔ وی- هغه بوټے چې نوې پاڼې يُ کړې وی- (۲)یو قسم واښهٔ-

غوړګه:(غوړ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- پنډی- سپینه- پړکے-

غوړګی:(غوړ-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پړوستی- پله- پلے- غوړکے-

غوړکے:(غوړ-کے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم سخت غُندې ډانډی لرونکے بوټے چې پهٔ شاړو کښې کیری ګلونه مُم نیسی-

غوړکے:(غوړ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوړګی-

غوړلاسے:(غوړ-لا-سے)صفت- کټه رسوونے-

غوړلانه:(غوړ-لا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خاورې داسې لوښے چې دَ پاسه پرې غوړ جذب کیری-

غوړلستونے:(غوړ-لس-تو-نے)صفت- (۱)اعتباری- باوری- (۲)موړ- شتمن- مالدار- دولتمن-

غوړلوښے:(غوړ-لو-ښے)صفت- داسې سړے چې نصیحت پرې اثر نهٔ کوی-

غوړلی:(غوړ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ جوارو وږے چې لا دانه يُ نهٔ وی نیولې-

غوړمال:(غوړ-مال)صفت- خوشامدګر- چاپلوس- بوس بادو- چاپړوس- (۲)اسم- واحد- مذکر- پهٔ ډېر مقدار دولت- (۲- صفت)ښانسته جینی یا ملک-

غوړمالی:(غوړ-ما-لی)اسم- واحد- مؤنث- خوشامدګری- چاپلوسی- چېړوسی- چاپړوسی- خوشامد- لافې- مکر- فرېب-

غوړمبه:(غو-ړم-به)اسم- واحد- مؤنث- غوړانخه- غوړنجه لمبه-

غوړمخے:(غوړ-مه-خے)صفت- (۱)ښکلے- پېمخے- خوش پوش- (۲)خوش قسمته- خوش نصیبه- ښهٔ نصیبے- جمع غوړمخی-

غوړمرغه:(غوړ-مر-غه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم واښهٔ چې دَ ګندنې پهٔ شان هر وخت تروتازه وی- غوړمرغی-

غوړمرغی:(غوړ-مر-غی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوړمرغه-

غوړمریجه:(غوړ-مه-ری-جه)اسم- واحد- مؤنث- هغه غوا وغېره چې پهٔ وړومبی خل لنګه شوې وی- اوړمخیزه-

غوړمنکے:(غوړ-منک-کے)صفت- (۱)وګورئ غوړلوښے- بې حیا- چې خبره پرې اثر نهٔ کوی- چې نصیحت پرې اثر نهٔ کوی- (۲)اسم- کنګال کړے یا وېنځلے مولے-

غوړمېچک:(غوړ-مې-چک)صفت- غوړ غندې- غوړ شان- غوړبڅن- غوړبڅن-

غوړمېچن:(غوړ-مې-چن)صفت- (۱)غوړمېچک- غوړ غُندې- (۲)دَ غوړ پهٔ وجه خیرن- غوړمېڅن-

غوړمېڅن:(غوړ-مې-څن)صفت- (۱)غوړ غندې- (۲)خیرن- وګورئ غوړمېچن-

غوړمین:(غوړ-مه-این)صفت- مؤنث غوړمینه- هغه څاروے یا سړے چې وازده پکښې ډېره وی-

غوړنجاوه:(غوړن-جا-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوړنجه-

غوړنجه:(غو-ړن-جه)اسم- واحد- مؤنث- غوړخکه- غوړانجه لمبه- غوړمبه ژبی- غوړنجاوه- دَ اور وُچته لمبه-

غوړنځے:(غو-ړن-ځے)اسم- واحد- مذکر- دَ زیړغوځو ونه- دَ صنوبر ونه- نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ صنوبر-

غوړندے:(غو-ړن-دے)اسم- واحد- مذکر- جمع غوړندی- (۱)غړوندے- (۲)پلوانه- (۳)پټی- جمع غوړندی-

غوړ نیکهٔ:(غوړ-نی-کهٔ)صفت- غور نیکهٔ- وز نیکهٔ- دَ مور پلار نیکهٔ-

غوړواښهٔ:(غوړ-وا-ښهٔ)اسم- واحد- مذکر- تروتازه واښهٔ-

غوړوکی:(غو-ړو-کی)اسم- واحد- مؤنث- کلی- غټی-

غوړول:(غوه-ړه-ول)مصدر متعدی- پهٔ څهٔ څیز غوړی یا تېل لګول- دَ روغنی څیز، غوړو یا دَ تېلو مالش ورکول-

غوړول:(غوه-ړه-ول)مصدر متعدی- خوړول- ویړول-

غوړولے:(غوه-ړه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غوړولی- مؤنث غوړولې- وګورئ غوړول-

غوړون:(غوه-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ غوړول-

غوړونکے:(غوه-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوړونکی- مؤنث غوړونکې- وګورئ غوړول-

غوړونګ:(غوه-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غوړول-

غوړونه:(غوه-ړه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوړول-

غوړونے:(غوه-ړه-وو-نے)اسم فاعل- جمع غوړونی- وګورئ غوړول-

غوړوۀ:(غوه-ړه-وۀ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غوړول-

غوړه:(غوه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نرمه خبره- پسته وینا- (۲)صفت- دَ غوړ مؤنث-

غوړه تره:(غوه-ړه-ته-ره)صفت- (۱)پسته- تېزه- (۲)ښۀ خوراک-

غوړه ښخه:(غوه-ړه-ښۀ-خه)اسم صفت- واحد- مؤنث- ښائسته ښځه-

غوړه مال:(غوه-ړه-مال)صفت- وګورئ غوړمال/غوړاؤ-

غوړه مالی:(غوه-ړه-ما-لی)اسم- واحد- مؤنث- خوشامنده-

غوړ ملک:(غوړ-مه-لک)اسم- واحد- مذکر- ښائسته ملک-

غوړی:(غوه-ړی)اسم- واحد/جمع- مذکر- غوړ- لۀ وازدې، کچو یا نباتاتو نه حاصلېدونکی روغن-

غوړیاشه:(غوړ-یا-شه)اسم- واحد- مؤنث- غړیاسه- غوړاشه- غړاشه- کاج- دَ تنې سورے-

غوړیالے:(غوړ-یا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- ټوقی- ټوقمار- (۲)پۀ غوړو خبرن- (افغانستان)-

غوړیانځکی:(غوړ-یانځ-کی)اسم- واحد- مؤنث- دَ سوسن ګل-

غوړیانه:(غوړ-یا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سوسن دَ ګل یو قسم- غوړ یانے-

غوړیانے:(غوړ-یا-نے)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوړیانه-

غوړیځی:(غو-ړی-ځی)اسم- کښې ګورې زلفې- ګولګوتې (ګالګوتی) ځنې-

غوړیږه:(غوه-ړی-ږه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم واښۀ- غړیږه- غریږه-

غوړیشه:(غوه-ړی-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ غړاشه- (۲)ګولګوتی وېښتۀ-

غوړیکه:(غوه-ړی-که)اسم- واحد- مؤنث- پېښه- حادثه-

غوړی مست:(غوه-ړی-مست)اسم- کنوچه- کنچه- یو قسم دارو چې دَ بوټی نه جوړولے شی-

غوړینی:(غوه-ړی-نی)صفت- دَ پېو کټوی چې پۀ پکښې تودوی او دَ پیو دَ وجې غوړه شوې وی-

غوړې ترې:(غوه-ړې-ت-رې)اسم مرکب- مؤنث- خوشامندې- چاپلوسی-

غوړېځن:(غوه-ړې-ځن)اسم صفت- وګورئ غوړمېچک-

غوړېدل:(غوه-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)پۀ روغنی څیز یعنی تېلو یا غوړو وغېره باندې مالش کېدل- (۲) څربېدل- (۳)خوربېدل- ویړېدل- (۴)سپړدلے کېدل- غټې ګل کېدل-

غوړېدلے:(غوه-ړې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غوړېدلی- مؤنث غوړېدلې- وګورئ غوړېدل-

غوړېدن:(غوه-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ غوړېدل-

غوړېدنګ:(غوه-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غوړېدل-

غوړېدنه:(غوه-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوړېدل-

غوړېدونکے:(غوه-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوړېدونکی- مؤنث غوړېدونکې- وګورئ غوړېدل-

غوړېدۀ:(غوه-ړې-دۀ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غوړېدل-

غوړېږن:(غوه-ړې-ږن)اسم صفت- وګورئ غوړمېچک-

غوړے:(غوه-ړے)اسم- واحد- مذکر- هغه پټې چې دَ پښې لۀ سپینو چاپېرولے شی- غړے- غړی-

غوز:(غوز)اسم- واحد- مذکر- هغه پړده یا وازده چې دَ کولمو نه تاؤ راتاو وی-

غوز:(غوز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غز-

غوزار:(غو-زار)صفت- غزار- (۱)غورزولے شوے- غرځولے- (۲)اسم- واحد- مذکر- ګوزار- حمله-

غوزارول:(غو-زا-رَ-ول)مصدر متعدی- غزارول- ارتاوول- غورزول- غرځول-

غوزارون:(غو-زا-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ غوزارول-

غوزارونکے:(غو-زا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوزارونکی- مؤنث غوزارونکې- وګورئ غوزارول-

غوزارونګ:(غو-زا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غوزارول-

غوزارونه:(غو-زا-ره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوزارول-

غوزارېدل:(غو-زا-رې-دل)مصدر لازم- غزارېدل- پرېوتل- ارتاوېدل- اړتاوېدل- غرځېدل-

غوزارېدن:(غو-زا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ غوزارېدل-

غوزارېدنګ:(غو-زا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غوزارېدل-

غوزارېدونکے:(غو-زا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوزارېدونکی- مؤنث غوزارېدونکې- وګورئ غوزارېدل-

غوزارېدنه:(غو-زا-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غوزارېدل-

غوزارېدۀ:(غو-زا-رې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ غوزارېدل-

غوزاړے:(غو-زا-ړے)اسم- واحد- مذکر- غوزانے- غوزانه- غوزکرکے-ګونګټ چې دَ سوټو غنډارې رغړوی-

غوزانه:(غو-زا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوزاړے-

غوزانے:(غو-زا-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوزاړے-

"ی" (ځی-رل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

غوزبه:(غوز-به)اسم- واحد- مؤنث- تېرې تېرې پاڼې لرونکې يوه وُنه-

غوززے:(غو-زه-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ چېلې دَ څرمنې يو چينجے- (۲)دَ دغه چينجي لهٔ وجې دَ چېلې دَ څرمن عيب چې پهٔ مشک کښې سورے پيدا کوی-

غوزه:(غو-زه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پومبې خول- پړوه- دَ پومبې غُټه- دَ وربښم دَ چينجو غوزه- جمع غوزې-

غوزه کرکے:(غو-زه-کر-کے)اسم- واحد- مذکر- جمع غوزکرکی- وُګورئ غوزاړے-

غوزې:(غو-زې)اسم- جمع- مؤنث- دارې- دَ اُبو دارې-

غوزے:(غو-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱) ترخ- تخرګ- (۲)دَ څهٔ څيز دومره مقدار چې پهٔ ترخ کښې راشی-

غوزے:(غو-زے)اسم- واحد- مذکر- ګېډے- پنډ-

غوزے:(غو-زے)اسم- واحد- مذکر- يو وړوکے شان چينجے چې دَ ګډو او بزو څرمن پورې انښتے وی- وُګورئ غوززے-

غوژګه:(غوژ-ګه)اسم- واحد- مذکر- توکانه-

غوژه:(غو-ژه)صفت- غوښژه- مضبوط- محکم- پائېدار- وُګورئ غوښژه-

غوژه:(غو-ژه)اسم- واحد- مذکر- يو قسم بوټے- توره مرغه- غُنچه ګل-

غوژه ور:(غو-ژه-ور)اسم- واحد- مذکر- دَ يو بوټي نامه-

غوژے:(غو-ژے)اسم- واحد- مذکر- لوئ مشک-

غوږ:(غَوږ)اسم- واحد- مذکر- دَ انسان يا دُ حېوان هغه اندام چې خبرې پرې اورى- دَ سماعت اندام- جمع غوږونه-

غوږابستل:(غوَږ-ابس-تَل)مصدر لازم- غوږباسل- دُ چا خبرې پهٔ پټه اورېدل-

غوږابستلے:(غوږ-ابس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غوږابستلی- مؤنث غوږابستلې- وُګورئ غوږابستل-

غوږابستن:(غوږ-ابس-تَن)حاصل مصدر- وُګورئ غوږابستل-

غوږابستنګ:(غوږ-ابس-تَنګ)حاصل مصدر- وُګورئ غوږابستل-

غوږابستنه:(غوږ-ابس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وُګورئ غوږابستل-

غوږابستونکے:(غوږ-ابس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوږابستونکی- مؤنث غوږابستونکې- وُګورئ غوږابستل-

غوږاېښونے:(غوږ-اې-ښو-نے)صفت- منونکے- خبره اورېدونکے- فرمانبردار-

غوږباسل:(غوَږ-با-سَل)مصدر متعدی- غوږابستنه کول- غوږوارنه کول- غوږوارى کول- دَ چا پټو خبرو ته پهٔ پټه غوږ نيول-

غوږباسلے:(غوَږ-با-سهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غوږباسلی- مؤنث غوږباسلې- وُګورئ غوږباسل-

غوږباسن:(غوَږ-با-سَن)حاصل مصدر- وُګورئ غوږباسل-

غوږباسنګ:(غوَږ-با-سَنګ)حاصل مصدر- وُګورئ غوږباسل-

غوږباسنه:(غوَږ-با-سهٔ-نه)حاصل مصدر- وُګورئ غوږباسل-

غوږباسونکے:(غوَږ-با-سون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غوږباسونکی- مؤنث غوږباسونکې- وُګورئ غوږباسل-

غوږباسے:(غوږ-با-سے)اسم- واحد- مذکر- غوږڅارنه- دَ چا خبرو ته پهٔ پټه غوږ نيونه-

غوږبوچے:(غَوږ-بُو-چے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ماشومانو يوه لوبه- (۲)صفت- غوږپرېکړے-

غوږبوڅے:(غَوږ-بُو-څے)اسم- واحد- مذکر- پس پسے- سرګوشی-

غوږپرېکړے:(غَوږ-پرې-کهٔ-ړے)صفت- بوڅے- بونډے-

غوږتاؤ:(غَوږ-تاؤ)اسم- واحد- مذکر- ګوښمالی- غوږتاوے-

غوږتاوے:(غَوږ-تا-وے)اسم- واحد- مذکر- (۱)غوږتاؤ- غوږمروړے- غوږ راکښنه- ګوښمالی- ګوشمالی- (۲)ادب ښئېنه-

غوږتومبنے:(غَوږ-توم-بهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې دَ غوږ نه پرې خيری وباسی- غوږونی-

غوږڅار:(غَوږ-څار)صفت- دَ چا خبرو ته غوږ نيوُنکے- متوجه-

غوږڅارنه:(غَوږ-څا-رهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وُګورئ غوږباسے-

غوږدارل:(غَوږ-دا-رَل)مصدر- دَ چا پټو خبرو ته غوږ نيول- دَ چا پټې خبرې اورېدل-

غوږدارنه:(غوږ-دا-رهٔ-نه)حاصل مصدر- دُ چا پټې خبرې پهٔ پټه اورېدنه- غوږدارى-

غوږدارى:(غوږ-دا-رى)اسم- غوږلوڅه- دَ چا خبرو ته پهٔ پټه غوږ کښېښودنه- غوږدارنه-

غوږسار:(غَوږ-سار)صفت- واحد- مذکر- عجيبه- نادر- نااشنا-

غوږکی:(غَوږ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پس پسے- سرګوشی- غوږبوڅے- غوږکے-

غوږکے:(غَوږ-کے)اسم- وُګورئ غوږکی-

غوږمروړے:(غَوږ-مرو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وُګورئ غوږتاوے-

غوږمک:(غَوږ-مک)اسم- واحد- مذکر- يو مهلک مرض چې دَ غوږ شا ته پېدا کيږی-

غوږمکه:(غَوږ-مُ-که)اسم- واحد- مؤنث- اوږمکه- سپوږمی-

غوږمبورے:(غوه-ړم-بو-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غوږ دَ شا هډوکے- (۲)دَ چرګانو دَ غوږونو دَ شا ښې-

غوړن:(غوه-ړن)صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ غوږونو خاوند- (۲)پهٔ څهٔ خبره اګاه- خبردار-

غوړندرويه:(غوه-ړند-رو-يه)اسم- غوږايستونے- هغه څوک چې دَ چا خبرې ته پهٔ پټه غوږ ږدی-

غوږنيولې:(غَوږ-نی-وهٔ-لې)اسم صفت- واحد- مؤنث- وينزه- پهٔ بيعه اخستې ښځه-

غوږنيوی:(غَوږ-نی-وی)اسم- واحد- مؤنث- غوږابستنه-

غوږنيوے:(غَوږ-نی-وے)اسم- واحد- مذکر- وُګورئ غوږباسے-

غوړو:(غوَه-ړو)صفت- دَ لويو غوړونو خاوند- غوړور-

غوړوَر:(غوَه-ړه-وَر)صفت- واحد/جمع- مذکر- وګورئ غوړو- پهٔ غوړونو تېز چې معمولي خبره هُم اوري-

غوړوره:(غوَه-ړه-وهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ غوړونو ټوپۍ- خولۍ-

غوړوکے:(غوَه-ړو-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ څادر يا دَ غُوندۍ ګټ-

غوړول:(غوَه-ړه-وَل)مصدرِ متعدي- خبره غوړ ته وررسول- وراوړول-

غوړون:(غوَه-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غوړول-

غوړونکے:(غوَه-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غوړونکي- مؤنث غوړونکې- وګورئ غوړول-

غوړونګ:(غوَه-ړه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غوړول-

غوړونه:(غوَه-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غوړول-

غوړباستل:(غوړ-باس-تَل)مصدرِ متعدي- غوړ اېښودل- غوړباسل-

غوړيز:(غوَه-ړيز)صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ تېرو غوړونو خاوند- (۲)دَ لويو غوړونو خاوند-

غوړين:(غوَه-ړين)اسم- واحد- مذکر- (۱)يولس ړزے ټوپک- سرپوښ ټوپک- (۲)صفت- ببرغوړے-

غوړېدل:(غوَه-ړې-دَل)مصدرِ لازم- خبرېدل- واقف کېدل-

غوړېدن:(غوَه-ړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ غوړېدل-

غوړېدنګ:(غوَه-ړې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ غوړېدل-

غوړېدنه:(غوَه-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ غوړېدل-

غوړېدونکے:(غوَه-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غوړېدونکي- مؤنث غوړېدونکې- وګورئ غوړېدل-

غوړېدهٔ:(غوَه-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ غوړېدل-

غوړۍ:(غوه-ړۍ)اسم- واحد- مؤنث- کټوۍ- لويه کټوۍ-

غوړۍ:(غوه-ړۍ)اسم- واحد- مؤنث- پس پسے-

غوسکے:(غوس-کے)اسم- واحد- مذکر- سخوندر- وګورئ غُڅکے-

غوشاک:(غو-شاک)اسم- واحد- مذکر- غوشيا-

غوشاۍ:(غو-شاۍ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوشيا-

غوشايه:(غو-شا-يه)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګورئ غوشيا-

غوشايهٔ:(غو-شا-يهٔ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوشيا-

غوشپنے:(غوش-پهٔ-نے)صفت- غُشيان ټولونکے-

غوشو:(غو-شو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوشيا-

غوشوړے:(غو-شهٔ-وړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوشيا-

غوشه:(غو-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غوشيا- (۲)خوشه- کنکورے- کنکوچے-

غوشۍ:(غو-شۍ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوشيا-

غوشيا:(غوش-يا)اسم- واحد- مذکر- غوشوړے- غُشايه- غوشايه- غوشئ- غوشو- غوشياړے- غوشاک- غوشاۍ- غوشيه- غوشه- دَ غوا مېښې يا نورو څاروو مغه فُضله چې وُچه شي-

غوشياړے:(غوش-يا-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غوشيا-

غوشيه:(غوش-يه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوشيا-

غوشېړ:(غو-شېړ)اسم- واحد- مذکر- (۱) غوجل- دَ غوشيانو ځاۍ- (۲)ناولے ځاۍ- ګنده ځاۍ-

غوشۍ:(غو-شۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱) نرۍ ملا- وړه شا- (۲)دَ دَوړ غرونو ترمينځه تنګه لار-

غوشے:(غو-شے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوا مېښې يا نورو څاروو فُضله- غوشاک- غوشيا-

غوښت:(غوښتْ)اسم- واحد- مذکر- غُښت- غوښتنه- غُښتنه- سوال- طلب- حاجت- ضرورت-

غوښت:(غوښت)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ شموخې پهٔ شان دَ نريو نريو دانو يوه غله چې زيات تر دَ مرزو خوراک ګڼلے شي دَ باجرې نه يې دانه نرۍ وي- نباتاتي نوم يے نی کم اتاليکم (PANICUM ITALICUM)-

غوښتل:(غوښ-تَل)مصدرِ متعدي- وګورئ غُښتل-

غوښتلے:(غوښ-تهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع غوښتلي- مؤنث غوښتلې- وګورئ غُوښتل-

غوښتنه:(غوښ-تهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث/حاصلِ مصدر- وګورئ غُښتنه-

غوښتونے:(غوښ-تو-نے)صفت- وګورئ غُښتل- غُښتونے-

غوښته:(غوښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- غُښته- خواهش- دعویٰ- جمع غوښتې-

غوښکے:(غوښ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ لينديې پټق- پټاس- پټاره- پټاق- پټاخ-

غوښلن:(غوَښ-لَن)صفت- مذکر- غټ- څرب- غوښن- تيار- غوښه ور- غوښين- غوښور-

غوښن:(غوه-ښَن)صفت- مذکر- وګورئ غوښلن-

غوښور:(غوه-ښه-وَر)صفت- مذکر- (۱)وګورئ غوښلن- (۲)مالداره- (عاميانه)-

غوښه:(غوَه-ښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ حېواناتو دَ مړوکو نه چاپېره پسته ماده- (۲)مال متاع- (عاميانه)- جمع غوښې-

غوښه ور:(غوه-ښه-وَر)صفت- مذکر- (۱)وګورئ غوښلن- (۲)مالداره- (عاميانه)-

غوښه ورتوب:(غوَه-ښه-وَر-توب)اسم- واحد- مذکر- غوښه ورتيا- شلنډتوب- چاغوالے- څرب والے-

غوښه ورتيا:(غوه-ښه-وَر-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوښه ورتوب-

غوښين:(غوَه-ښين)صفت- مذکر- وګورئ غوښلن-

غوغا:(غو-غا)اسم- واحد- مؤنث- شور فرياد- شور زوږ- ژړا انګولا- هنګامه- فرياد-

غوغو:(غو-غو)اسم- جمع- جماع- بد فعلي-

"ئ" (ځی-رَل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

غوغو:(غو-غو)اسم صوت- دَ سپي دَ غپا اواز-

غول:(غول)اسم- واحد- مذکر- (۱)چوره- (۲)صفت- دَ غنمو دَ بورۍ دَ خلې دَ پرانستے کېدو او دَ غنمو دَ تونېدو حالت-

غول:(غول)اسم- واحد- مذکر- (۱)جماعت- گـنـه- پله- غـنـډه- دَ سړو جورمه- جمعیت- لښکر- سېل-

غول:(غول/غه-وَل)مصدر- چاسره بد فعلی کول- جماع کول- غو کول- غوول-

غول:(غول)اسم- یو فرضی خوفناک یرونکے وجود، دېوان، پیریان وغېره-

غولاټے:(غو-لا-ټے)صفت- واحد- مذکر- ویرېدونکے- پرن- ټرن- غولن- پارن- جمع غولاټیان/غولاټی-

غولان:(غو-لان)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ غول جمع- پیریان- (۲)وحشیان- (۳)حرام زادگان-

غولانخ:(غو-لانخ)اسم- واحد- مؤنث- دَ غوا مېښې وغېره دَ پیو ورکولو اندام- دَ حیوان تئینه/تیان- سینه- غولانخه-

غولانخه:(غو-لان-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ غولانخ- (۲)دَ څارو دَ خوراک یو قسم واښهٔ چې آبی رنګ ګل نیسی-

غولاوڼ:(غو-لا-وڼ)صفت- مذکر- (۱)وګورئ غلاټے- (۲)ماشوم-

غولبند:(غول-بَند)اسم- واحد- مذکر- یوه لوبه-

غولبنګی:(غول-بَنګ-ګی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ متیازو کولو ځاې- بیت الخلا- ټټی-

غولبه:(غول-به)اسم- واحد- مؤنث- قلبه- جمع غولبې-

غولتیا:(غول-تیا)اسم- نامردی- نامردی- بې غېرتی-

غولتی:(غول-تی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- فرېب- ټګی- غلا سره یو ځاې استعمالیږی-

غولغوله:(غول-غو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غلغله-

غولک:(غو-لک)اسم- واحد- مذکر- ګلهـ- دَ پېسو دَ جمع کولو ځاې- کېش بکس- جمع غولکونه-

غولکه:(غول-که)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ ګېټو کنکرو کېدونکې یوه لوبه-

غولکورے:(غول-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- لوې ړنده- دَ غوږ شا ته ځاې- اجلځے- جمع غولکوری-

غولمرګ:(غول-مَرګ)اسم- واحد- مذکر- پهٔ زخم کښې دننه پیپ او ګندګی-

غولن:(غو-لن)صفت- واحد- مذکر- (۱)ډېر غُل کوُنکے- (۲)ویرېدونکے- بزدل- غلاټے- پرن- ټیزن-

غولنج:(غو-لنج)اسم- واحد- مذکر- هغه درد چې دَ قولون پهٔ کولمه کښې پیدا کیږی- (دَ قولنج مغفن)-

غولنکې:(غو-لن-کې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم ننکی چې پهٔ سترګه راځیژی- غلنکې* غولنګ- غولنګه- غولنه-

غولنګ:(غو-لنګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غولنکې- غولنه-

غولنګه:(غو-لنګ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غولنکې-

غولنه:(غو-لهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ غولنکے- (۲)صفت- مؤنث- دَ غولن مؤنث-

غول وغال:(غول-وَ-غال)اسم- واحد- مذکر- هجوم- ازدحام- شورماشور-

غولول:(غو-له-وَل)مصدر متعدی- دوکه کول- دوکه ورکول- ټګی کول-

غولولے:(غو-له-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غولولی- مؤنث غولولې- وګورئ غولول-

غولون:(غو-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ غولول-

غولونکے:(غو-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غولوُنکی- مؤنث غولوُنکې- وګورئ غولول-

غولونګ:(غو-له-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ غولول-

غولونه:(غو-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غولول-

غولوونکې:(غو-له-وُون-کې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غُلنکې- غولنکې- غولنګ- (۲)دَ غولونکے مؤنث-

غولوهٔ:(غو-له-وَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غولول-

غوله:(غو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شاتیر- (۲)ګوله- ګرګه- برغنډے- غنډ منډ لرګے- (۳)دَ پنیر اندازه کولو پیمانه جمع غولې-

غوله:(غو-له)تکیه کلام وګورئ غله/غلے- دَ مخاطبې توریے (عامیانه)-

غوله کمانه:(غو-له-که-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- غورکمان- غُرکمان- کمان- دَ ورېې ژی لرونکې لینده- دَ غشی لیندهٔ-

غولیچ:(غو-لیچ)صفت- واحد- مذکر- غلیچ- زوره ور- قوی- توانا- سېکمن-

غولی ناسته:(غو-لی-ناس-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پهٔ غولی کښې ناسته- (۲)مجلس- محفل- مېلس- (۳)اتفاق- (۴)پېښې ارته- (دَ وادهٔ یو رسم)-

غولېدل:(غو-لې-دَل)مصدر لازم- دوکه کېدل- فرېب کښې ګېرېدل-

غولېدن:(غو-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ غولېدل-

غولېدنګ:(غو-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ غولېدل-

غولېدنه:(غو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غولېدل-

غولېدونکے:(غو-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غولېدونکی- مؤنث غولېدونکې- وګورئ غولېدل-

غولېدهٔ:(غو-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غولېدل-

غولی:(غو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)لویه وله- غټ لښتے- (۲)ګرداؤ- ګرداب- څرڅاو- غرومبی-

غولی:(غو-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ کور کرایه-

غولی غولی:(غو-لی-غو-لی)صفت- (۱)چپې چپې- چپې دَ پاسه چپې- (۲)پلې پلې-

غولے:(غو-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)انګڼ- دَ کور دننه دَ کوټو مخې ته مېدان- صحن- مېدان- (۲)حویلی-

غولے:(غو-لے)صفت- واحد- مذکر- نامرد- نامرد- بې غیرته سړے- دَ شاغلے ضد-

غولے:(غو-لے/غه-وهٔ-لے)صفت/مفعول- وګورئ غول-

غوماشه:(غو-ما-شه)اسم- واحد- مؤنث- ماشے- جمع غوماشې-

غومبار:(غوم-بار)اسم- واحد- مذکر- (۱)کثیف لوګے- (۲)داسې اواز چې تميز ئې نهٔ کیږی- غُمبر- غُمبار-

غومباره:(غوم-با-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اوړوکې توپه- (۲)پړسوب چې دَ وهلو یا دَ څهٔ زهریلا څيز دَ خوړلو په سبب پیدا شي- متهاکه- جمع غومبارې-

غومبر:(غوم-بر)اسم- واحد- مذکر- دَ مستئ پهٔ وخت دَ کونترو غُررار- دَ مستئ نه دَ کونترو تاو را تاؤ کېدنه او اواز اېستنه-

غومبر:(غوم-بر)اسم- واحد- مذکر- دَ ګډا پهٔ وخت دَ ملکانو دَ لاسونو پېولو سره دَ خُلونه دَ تمبل پهٔ شان اواز وېستنه- بغبغو-

غومبرے:(غوم-به-رے)اسم- واحد- مذکر- بارخو- بارخو- رُخسار- مخ- غومبورے- اننګے- ننګے- جمع غومبرې-

غومبړول:(غوم-به-ړه-ول)مصدر متعدی- ګنہه ګونہه جوړول- دَ خلقو راغنړول-

غومبړون:(غوم-به-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ غومبړول-

غومبړونګ:(غوم-به-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غومبړول-

غومبړونه:(غوم-به-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غومبړول-

غومبړونکے:(غوم-به-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غومبړونکی- مؤنث غومبړونکې- وګورئ غومبړول-

غومبړوهٔ:(غوم-به-ړه-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غومبړول-

غومبړه:(غوم-به-ړه)اسم- واحد- مؤنث- غوړه روټی-

غومبسکه:(غوم-بس-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غومبسه-

غومبسکے:(غوم-بس-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غومبسه-

غومبسه:(غوم-بهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- زنبور- بامبره- بمبره- ړمبرګی- ړمبره- ړنهاره- غومبسکه- جمع غومبسې-

غومبک:(غوم-بک)اسم- واحد- مذکر- يو قسم بوټے-

غومبوخکه:(غوم-بوخ-که)اسم- واحد- مؤنث- ستغ- راوتلې غوښه- جمع غومبوخکې-

غومبوره:(غوم-بو-ره)اسم- واحد- مؤنث- داسې ښځه چې هر وخت شر غواړی- شری ښځه- جمع غومبورې-

غومبورے:(غوم-بو-رے)اسم- واحد- مذکر- جمع غومبوری- وګورئ غومبرے- جمع غومبوری-

غومبول:(غوم-به-ول)مصدر متعدی- ډېر تنګول- چيړل- خفه کول-

غومبون:(غوم-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ غومبول-

غومبونکے:(غوم-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غومبونکی- مؤنث غومبونکې- وګورئ غومبول-

غومبونګ:(غوم-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غومبول-

غومبونه:(غوم-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غومبول-

غومبوهٔ:(غوم-به-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غومبول-

غومبه:(غوم-به)اسم- واحد- مؤنث- غنداړے- ستغ- غومبسکے- جمع غومبې-

غومبی غومبی:(غوم-بی-غوم-بی)صفت- پړسېدلے پړسېدلے-

غومړه:(غو-مه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- غومبره- غوړه نمړی-

غوم غومبکه:(غوم-غوم-به-که)صفت/متعلق فعل- راټول شوی- جمع شوی-

غومېدل:(غو-مې-دل)مصدر لازم- دَ غصې نه ډک کښېناستل او ګونې ګونې کول- دَ غصې نه ځان سره خبرې کول- ګورېدل-

غومېدلے:(غو-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غومېدلی- مؤنث غومېدلې- وګورئ غومېدل-

غومېدن:(غو-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ غومېدل-

غومېدنګ:(غو-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غومېدل-

غومېدنه:(غو-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غومېدل-

غومېدونکے:(غو-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غومېدونکی- مؤنث غومېدونکې- وګورئ غومېدل-

غومېدهٔ:(غو-مې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ غومېدل-

غومے:(غو-مے)اسم-واحد- مذکر- زيړ ګل لرونکے يو قسم بوټے-

غون:(غه-ون)حاصل مصدر- وګورئ غول-

غونا:(غو-نا)اسم- واحد- مذکر- غونے- وېښتهٔ-

غوناجی:(غو-نا-جی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- خوانه غوا-

غوناره:(غو-نا-ره)اسم- واحد- مؤنث- يو ډېر خوشبودار غرنيز ګل-

غوناړ:(غو-ناړ)اسم- واحد- مذکر- دَ ډوډئ خوړلو نه پس دَ خُلې خوند ښهٔ کولو دَ پاره خوړلې کېدونکې مېوه- غوناړه-

غوناړه:(غو-نا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غوناړ-

غونبتی:(غون-به-تی)اسم- واحد- مذکر- غُنډ-

غونبخ:(غون-بخ)اسم- واحد- مذکر- دَ مليريا ماشے-

غونتی:(غون-تی)اسم- واحد- مؤنث- مغه کړينګ چې دَ ماشومانو لهٔ پوزې بهيږی-

غونج:(غونج)صفت- (۱)جم شوے- يخ شوے- (۲)منجيله- ګنجې- (۳)غوندے-

غونجا:(غون-جا)صفت- کم عقل- بې کاره- بې فائدې-

غونج راغونج:(غونج-را-غونج)صفت- وګورئ غونج-

غونج مونج:(غونج-مونج)صفت- وګورئ غونج-

غونجوالے:(غونج-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- ګنجې توب-

ئ (ځي-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پیا-لي)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

(افغانستان)-

غونجول:(غونْ-جه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)ګونجې کول- ګنجې کول- ګلګوتی کول- منجیله کول- راټولول- (۲)یخول- جام کول- (افغانستان)-

غونجون:(غونْ-جه-وَن)حاصلِ مصدر- وګوره غونجول-

غونجونکے:(غونْ-جه-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غونجونکی- مؤنث غونجونکې- وګوره غونجول-

غونجونګ:(غونْ-جه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګوره غونجول-

غونجونه:(غونْ-جه-وَه-نه)حاصلِ مصدر- وګوره غونجول-

غونجوه:(غونْ-جه-وَه)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګوره غونجول-

غونجې:(غونْ-جې)صفت- (۱)ګونجې- ګونځې- غونجے- غونج- غرلې- (۲)چک شوے- جام شوے-

غونجېدل:(غونْ-جې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)منجیله کېدل- ګنجې کېدل- ګونجې کېدل- راټولېدل- (۲)یخېدل- جام کېدل- چک کېدل-

غونجېدن:(غونْ-جې-دَن)حاصلِ مصدر- وګوره غونجېدل-

غونجېدنګ:(غونْ-جې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګوره غونجېدل-

غونجېدنه:(غونْ-جې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګوره غونجېدل-

غونجېدونکے:(غونْ-جې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غونجېدونکی- مؤنث غونجېدونکې- وګوره غونجېدل-

غونجېده:(غونْ-جې-دَه)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګوره غونجېدل-

غونجی:(غونْ-جی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ګونجی- د تار یا بوڼ ماشوره-

غونجے:(غونْ-جے)اسم- واحد- مذکر- وګوره غونجې-

غونځاۍ:(غون-ځاۍ)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې پومبه پرې صفا کولے شی-

غونځاښی:(غون-ځا-ښی)اسم- جمع- وګوره غنځاښی-

غونځرکے:(غون-ځر-کے)اسم- واحد- مذکر- تازه پېدا شوے د چېلۍ بچے- جمع غونځرکی-

غونخول:(غونْ-خه-وَل)مصدرِ متعدی- حرکت ورکول- خوځول-

غونخولے:(غونْ-خه-وَه-نه)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع غونخولی- مؤنث غونخولې- وګوره غونخول-

غونخون:(غونْ-خه-وَن)حاصلِ مصدر- وګوره غونخول-

غونخونکے:(غونْ-خه-وُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غونخونکی- مؤنث غونخونکې- وګوره غونخول-

غونخونګ:(غونْ-خه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګوره غونخول-

غونخونه:(غونْ-خه-وَه-نه)حاصلِ مصدر- وګوره غونخول-

غونخوه:(غونْ-خه-وَه)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګوره غونخول-

غونخه:(غونْ-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګوره پسکاوڼه- (۲)د الو بالو د قسم یوه ونه-

غونخه:(غونْ-خه)اسم- واحد- مؤنث- حرکت- خوځېدنه-

غونخېدل:(غونْ-خې-دَل)مصدرِ لازم- حرکت کول- خوځېدل- غنځېدل-

غونخېدلے:(غونْ-خې-دَه-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع غونخېدلی- مؤنث غونخېدلې- وګوره غونخېدل-

غونخېدن:(غونْ-خې-دَن)حاصلِ مصدر- وګوره غونخېدل-

غونخېدنګ:(غونْ-خې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګوره غونخېدل-

غونخېدنه:(غونْ-خې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګوره غونخېدل-

غونخېدونکے:(غونْ-خې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع غونخېدونکی- مؤنث غونخېدونکې- وګوره غونخېدل-

غونخېده:(غونْ-خې-دَه)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګوره غونخېدل-

غونډے:(غونْ-ډے)اسم- واحد- مذکر- غُنډے- غُونډے- وګوره غونډے-

غونچه:(غونْ-چه)اسم- واحد- مؤنث- غُنچه- غنچک- غومپک- جومپک- د ګلو کېډی-

غوندرکے:(غونْ-دره- کے)صفت- واحد- مذکر- منډرے- غوندرے- ووکے قد لرونکے- ټېمرے- غومبے-

غوندرے:(غونْ-درے)صفت- وګوره غوندرکے-

غوندل:(غونْ-دَل)مصدرِ متعدی- غندل- غاندل- مذمت کول- هجو بیانول- (مشرانو پېر کم استعمال کړے دے)-

غوندورے:(غون-دو-رے)اسم- واحد- مذکر- غونډارے- غنډارے- ګاټے-

غونده:(غون-ده)اسم- واحد- مؤنث- شنلی او تار تار شوې وړی- پڼس شوې وړی-

غوندی ستن:(غُون-دی-سْتن)اسم- واحد- مؤنث- هغه غټه ستن چې غوندی، کڅې او د بوجو خلې پرې ګنډلے شی-

غوندې:(غون-دې)کلمه تشبیه- لکه- پهٔ شان- غندې- پهٔ شېر- پهٔ شکل-

غوندے:(غُون-دے)اسم- واحد- مذکر- دوه برخه ګنډلے شوې بوری- غندے- بوری-

غونډ:(غونډ)صفت- (۱)د دائرې پهٔ شکل ګول- (۲)ټول- پهٔ جمع- واړه- غُنډ-

غونډ:(غونډ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پله- جماعت- (۲)د افغانستان د فوځ یوه پله چې د غنډمشر لاندې وی- (۳)د ونې ناتراشلې شوې تنه چې ابادی کښې ولګولے شی-

غونډاری:(غون-ډا-ری)اسم- جمع- مذکر- غنډاری- (۱)غُنډ منډ کاڼی- غُنډی کاڼی- (۲)لهٔ خټو یا شګو جوړ د ماشومانو د لوبو ګولې- (۳)ټکی- وړې وړې کلچې-

غونډاری:(غونْ-ډا-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- غونډۍ- پوټې- رسولی-

غونډارے:(غونْ-ډا-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګوره غونډاری- (۲)یو قسم

زبر"(غ-بـهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تـاب)، جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(پو-ښې-دهٔ)

بیماری- جمع غونډاری-

غونډان:(غون-ډان)اسم- مذکر- د غونډ جمع-

غونډایه:(غون-ډا-یه)صفت- واحد- مذکر- ګوار- لواړ- پوماړ- ژبان- ژبن- بې ډوله-

غونډراغونډ:(غونډ-را-غونډ)صفت- خپلو کښې راجخت شوی- راغنډ شوی-

غونډژبے:(غونډ-ژه-بے)صفت- (۱)تږتږے- چې ژبه یې نښلی- (۲)فصیح- بلیغ-

غونډسر:(غونډ-سر)اسم- واحد- مذکر- د ځنګلی وُنو پاڼې چې لۀ کڼ والی نه خپلو کښې ننوتی وی- ګونډه سر-

غونډسرے:(غونډ-سه-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)کونټې- (۲)یو بوټے چې سپین ګل کوی- اوښ مرغي ورته هم وائي- (۳)صفت- ګول سرے- غنډ سر والا- غنډ سرے- جمع غنډ سری-

غونډسکه:(غون-ډس-که)اسم- واحد- مؤنث- منډوس-

غونډسکے:(غون-ډس- کے)اسم- واحد- مذکر- ټپوسے- د چرګو یوه بیماری- جمع غنډسکی-

غونډک:(غون-ډک)اسم- واحد- مذکر- غنډل- کنډل- لړمی- غنډه-

غونډک:(غون-ډک)اسم- واحد- مذکر- ګروپ- جماعت- فرقه- غنډک-

غونډکه:(غون-ډه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غونډکی-

غونډکی:(غون-ډه-کی)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- د غونډی اسم تصغیر- (۱)وړوکے غر- (۲)ټیټکی- چیټکی-

غونډکے:(غون-ډه-کے)صفت- د وړوکی قد- مندرے- غنډکے-

غونډل:(غون-ډل)اسم- واحد- مذکر- کنډل- غنډک- غونډک- لړمی-

غونډمن:(غونډ-من)صفت- ګول- غونډ مونډ- غونډ منډ- بیخی غنډ- وګورئ غونډ مونډ-

غونډ مونډ:(غونډ-مونډ)صفت- واحد جمع- مذکر- (۱)ګول- بیخی غنډ- چیت- ټیت- مندرے- چیتکے- د وړوکی قد- (۲)خړب- شلنډ- غټ کټ-

غونډواله:(غونډ-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غونډوالے-

غونډوالے:(غونډ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- د غنډ/غونډ کېدو حالت-

غونډوربوزے:(غونډ-ور-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بیماری-

غونډو:(غون-ډو)صفت- ښکلې جبنی- ځربه او ښکلې جینی- غونډه-

غونډورے:(غون-ډو-رے)اسم- واحد- مذکر- غونډارے- غنډارے-

غونډوړے:(غونډ-وه-ړے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم واښۀ- کبل - درب- دُپ- نباتاتی نوم سانښوړن ډېکتې لون (CYNODON DACTYLON)-

غونډوس:(غون-ډوس)اسم- واحد- مذکر- غنډوس- پنډوس- توپ- ټپکے- ګیند-

غونډوسکے:(غون-ډوس-کے)اسم- واحد- مذکر- د غونډوس اسم تصغیر غنډوس-

غونډول:(غون-ډه-ول)مصدر متعدی- (۱)غنډول- جمع کول- راټولول- یوځایٔ کول- (۲)ګول کول- رانغاړل- (۳)فېصله کول-

غونډون:(غون-ډه-ون)حاصل مصدر- وګورئ غونډول-

غونډونکے:(غون-ډه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غونډونکی- مؤنث غونډونکې- وګورئ غونډول-

غونډونګ:(غون-ډه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غونډول-

غونډونه:(غون-ډه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غونډول-

غونډوۀ:(غون-ډه-وۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ غونډول-

غونډه:(غون-ډه)صفت- واحد- مؤنث- د غونډو مؤنث- د وړوکی قد ښځه-

غونډه:(غون-ډه)اسم- واحد- مؤنث- جمیعت- اجتماع- ټولے- ټولنه- مجلس- ټولګے- (۲)د خازرې وړوکے چم- غونډارے- طالفه-

غونډه مری:(غون-ډه-مه-ری)اسم- واحد- مؤنث- حلق- تالو- مری-

غونډی:(غون-ډی)صفت- جمع- مذکر- د غونډے جمع-

غونډیچر:(غون-ډی-چر)اسم- واحد- مذکر- یو خودرو بوټے چې د اوړې پۀ شان وی-

غونډېدل:(غون-ډې-دل)مصدر لازم- (۱)جمع کېدل- راټولېدل- یوځایٔ کېدل- (۲)ګول کېدل- رانغاړېدل- (۳)فېصله کېدل-

غونډېدن:(غون-ډې-دن)حاصل مصدر- وګورئ غونډېدل-

غونډېدنګ:(غون-ډې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ غونډېدل-

غونډېدنه:(غون-ډې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غونډېدل-

غونډېدونکے:(غون-ډې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غونډېدونکی- مؤنث غونډېدونکې- وګورئ غونډېدل-

غونډېدۀ:(غون-ډې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ غونډېدل-

غونډی:(غون-ډی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)وړوکے غر- د کاڼو وړوکے غر- (۲)د خازرو پخه ډېری- خټ- (۳)صفت- د غونډ/غنډ مؤنث-

غونډے:(غون-ډے)صفت- غنډے- (۱)ټیټکے- ټیټ- لنډے- غونډکے- (۲)ګول- (۳)وګورئ غنډل- جمع غونډی-

غونډے:(غون-ډے)صفت- غنډے- زلمے- ژبے- ژبکے- زبے- ملک- جمع غونډی-

غونشه:(غون-شه)اسم- واحد- مؤنث- غنچه- غنشه- د ځنو میوو وږے- انګور- جمع غونشې-

غونکے:(غه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ غول-

غونګ:(غه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غول-

غونه:(غو-نه)اسم- واحد- مؤنث- د وجود نری او باریک وېښتۀ- تور وېښتۀ- زومبه- وری- خورمه- د وېښتو سورے- سام- (۲)ګونه- جمع غونې-

غونه:(غه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غول-

غونه خیګېدل:(غو-نه-خی-ګې-دل)مصدر لازم- د زېږې لۀ کبله د بدن وېښتۀ

نیغېدل-
غونی:(غو-نی)اسم- جمع- مذکر- (۱)وېښتهٔ- (۲)پوستکے-
غونېښے:(غو-نې-ښے)صفت- دَ ښو اخلاقو- خوږ ژبانه- خوش اخلاقه-
غونے:(غو-نے)لاحقه چې دَ اسم نه پس راځی او دَ څهٔ صفت اظهار پکښې کیږی لکه ژړه غونے وغېره-
غونے:(غو-نے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ وجود وېښتهٔ- وګوری غونه/غونی- (۲)دَ بدن څرمن- (۳)طبیعت- خونی- اموخت- جمع غونی-
غوڼ:(غوڼ)صفت- بداوازه- پوزه کښې خبرې کونکے- غوڼے- ګڼها- ګڼس- ګوڼس-
غوڼسکه:(غو-ڼاس-که)اسم- واحد- مؤنث- غړانګه- جمع غوڼاسکې-
غوڼاشکے:(غو-ڼاش-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ځنکدن سلګی- (۲)دَ اُبو ورو بهېدنه- جمع غوڼاشکی-
غوڼکے:(غوڼ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګوری غوڼهار-
غوڼه:(غو-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ځرخ وغېره دَ ګرځېدو ورو اواز-
غوڼهار:(غو-ڼهار)اسم صفت- غوڼکے- بڼار- بنګے- پهٔ پوزه کښې خبرې کېدنه-
غونېدل:(غو-نې-دل)مصدر لازم- دَ ځان سره خبرې کول- ګونېدل- بڼېدل-
غونېدلے:(غو-نې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع غونېدلی- مؤنث غونېدلې- وګوری غونېدل-
غونېدن:(غو-نې-دن)حاصل مصدر- وګوری غونېدل-
غونېدنګ:(غو-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری غونېدل-
غونېدنه:(غو-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری غونېدل-
غونېدونکے:(غو-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غونېدونکی- مؤنث غونېدونکې- وګوری غونېدل-
غونېدهٔ:(غو-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوری غونېدل-
غونېږے:(غو-نې-ږے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ شپېلی اواز-
غونے:(غو-نے)صفت- واحد- مذکر- غوڼ- پوزه کښې خبرې کونکے- جمع غونی-
غووړ:(غو-وړ)اسم- واحد- مذکر- بخه- یو قسم چینجے چې جامې سوری کوی-
غووړه:(غو-و-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ موسیقی تال او تول-
غوول:(غو-ول)مصدر متعدی- غول- دَ نارینه دَ زنانه یا دَ نارینه دَ نارینه سره هم بستری کول- چا ته شرم اړول- چا له سترګې ټیټول-
غوولے:(غو-وهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- وګوری غوول- (۲)نامرد- بې غېرته- (۳)دَ ښاغلی ضد-
غوون:(غو-ون)حاصل مصدر- وګوری غوول-
غوونکے:(غو-وون-کے)اسم فاعل- وګوری غوول- بدکاری کونکے-
غوونګ:(غو-ونګ)حاصل مصدر- وګوری غوول-
غوونه:(غو-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری غوول-
غووهٔ:(غو-وهٔ)حاصل مصدر- وګوری غوول-
غوېبانړے:(غوی-با-ڼے)اسم- واحد- مذکر- دَ پلنو پاڼو یو بوټے چې حېوانات ئې خوری-
غویخرګ:(غوی-خه-رګ)اسم- واحد- مذکر- یو غرنیز بوټے چې حېوانات ئې خوری-
غویږه:(غوی-ږه)صفت- نرم- غوړ- لچک لرونکے-
غوینارړه:(غوی-نا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم واښهٔ چې دَ سپرلی موسم کښې کیږی-
غوئین رګ:(غوه-ئین-رګ)اسم- واحد- مذکر- رګ نساء-
غوېږل:(غوې-ږل)اسم- واحد- مذکر- دَ غوا بېږی-
غوېږنګ:(غوې-ږنګ)اسم- واحد- مذکر- دَ شهوت رګ-
غوېړنی:(غوې-ړه-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)لهٔ غوړونو دَ خیری وکښلو اَله- غوړونی- غوړتومبنے- (۲)والی- دَ غوړونو یو پسول-
غوېښکے:(غوېښ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ غنمو نوے زرغن شوے فصل-
غوېلانړه:(غوې-لا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سپرلی پهٔ سر کښې زرغنېدونکې یوه ګیاه چې اوږدې اوږدې پاڼې لری-
غوېلنګ:(غوې-لنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دمچی- (۲)دَ غوښې یو قسم- (۳)هغه پټی چې دَ بار وړونکو څاروو دَ لکۍ لاندې تړلے شوی وی- پیاړمه-
غوېمنړ:(غوې-منړ)اسم- غوېمه- (۱)دَ څاریو ټوپونه وهنه- (۲)پهٔ غوایانو غوبل کونه- (۳)ګڼه ګوڼه- شورشغرب- افراتفری-
غوېمه:(غوې-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګوری غوېمنړ- (۲)ببر سپی چې پهٔ واریزې سپی پسې وی- (۳)دَ غوا وار راوړنه- (۴)پهٔ ګڼو غوایانو درمند مېده کونه-
غوېمه لنګ:(غوې-مه-لنګ)اسم- واحد- مذکر- پیاړمه- ورستاړه- مچی- غوېلنګ-
غوېے:(غوې)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غوا مذکر- (۲)احمق- کم عقل- بې وقوف-
غوې انړے:(غوې-اَن-ړے)اسم- واحد- مذکر- فساد- شر- پره جمبه-
غه:(غه)ضمیر- دَ هغه مخفف- هغه-
غیاب:(غه-یاب)اسم- واحد- مذکر- غېرحاضری- غفلت- (م- عربی)-
غیالی:(غیا-لی)اسم صفت- اړړے ګړ-
غیبه:(غی-به)اسم- واحد- مؤنث- وهلے شوے مالوچ یا وړی-
غیپ:(غیپ)اسم- واحد- مذکر- پیک- قیف- (افغانستان)-
غیره:(غه-یهٔ-ره)صفت- (۱)غاوره- مغروره- متکبر- کبرژن- غره- فخر کونکے-
غیشه:(غی-شه)اسم- واحد/جمع- مؤنث- غوشه- غوبنه-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکوڼ)، ه"(ز-ړه)، ـهٔ"(پو-ہې-دهٔ)

غیشلی:(غیش-لی)اسم- واحد- مؤنث- خارښ- ګرېدنه- خارښت-

غیشلے:(غی-شهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- تالے- ښاټک-

غیل:(غیل)اسم- واحد- مذکر- فریب- دوکه- چل-

غیلان:(غی-لان)اسم- دَ تپلو دَ ګانې مغه تیر چې سولېدلے وی او تخم ښهٔ نه شی ځېبېښلے-

غیلے:(غی-لے)صفت/مفعول- مغه ځوک چې بدکاری ورسره شوې وی- غوولے- ګولے-

غیمبسه:(غیم-بهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- بنګسه- سیلی چې شګې خاورې الوځوی-

غین:(غین)اسم- واحد- مذکر- غینې- غڼ- ړګه- ذکر- دَ سړی اله تناسل- چنبکے- چوڼ-

غینجه:(غین-جه)اسم- واحد- مؤنث- ټوپ- ترپکه-

غینې:(غینې)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غین-

غینور:(غی-نه-زر)صفت- مذکر- دَ غینې خاوند- غټ غینې لرونکے- (۲)بې حیا- (۳)بې شرما- (۴)زناکار- شهوتی-

غیور:(غه-یور)صفت- غېرتمند- ننګیالے- غېرتی- (م- عربی)-

غیوری:(غه-یو-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ غیور کېدو حالت-

غېب:(غېب)صفت- (۱)دَ سترګو نه پناه- پهٔ نظر نهٔ راتلونکے- غېر موجود- پټ- (۲)پرده- (م- عربی)-

غېبانه:(غې-با-نه)صفت/متعلق فعل- دَ غېبو- غېبی- پټ- پراسرار- (م- غائبانه- فارسی)-

غېبانهٔ:(غې-با-نهٔ)اسم- جمع- مذکر- غېب عالم- پېریان- (۲)دَ غېبانهٔ اثر- دَ پېریانو اثر-

غېبت:(غې-بت)اسم- واحد- مذکر- دَ چا پهٔ غېر موجودګی کښې پهٔ مغهٔ پسې خبرې کونه- پشی شا دَ چا عېب بیانونه- جمع غېبتونه-

غېب عالم:(غېب-عا-لم)اسم- جمع- مذکر- پېریان-

غېب ګوئی:(غېب-ګو-ئی)اسم- واحد- مذکر- پېشګوئی-

غېبی:(غې-بی)صفت- (۱)اچانک- سمدستی- ناګهانه- (۲)پهٔ نظر نهٔ راتلونکے-

غېجه:(غې-جه)صفت- غوېژه- (۱)مضبوط- محکم- سخت- (۲)اسم- دَ زمری یو قسم- ځنګلی خر- دَ سائنسی نوم دَ پاره وګورئ زمرے- جمع غېجی-

غېر:(غېر)صفت- دَ خپل ضد- پردے- بېګانه- باری- ناآشنا- بهرنے-

غېر آباد:(غېر-آ-باد)صفت- وران- زیجاړ- بیدیا- شاړه- صحرا- کنډر-

غېرت:(غې-رت)اسم- واحد- مذکر- ننګ- شرم- پښتو- حمیت- مړانه- بهادری- (عربی)-

غېرتمن:(غې-رت-من)صفت- وګورئ غېرتمند-

غېرتمند:(غې-رت-من)صفت- غېرت لرونکے- غېرتی- ننګ کونکے- بهادر- غېرت ناک-

غېرتمن تیا:(غې-رت-من-تیا)اسم- دَ غېرتمن کېدو حالت-

غېرتمند:(غې-رت-مند)صفت- وګورئ غېرتمن- (فارسی)-

غېرتمندتیا:(غې-رت-مند-تیا)اسم- دَ غېرتمند کېدو حالت-

غېرتناک:(غې-رت-ناک)صفت- وګورئ غېرتمن-

غېرتی:(غې-ره-تی)صفت- وګورئ غېرتمن- جمع غېرتیان-

غېرحاضر:(غېر-حا-ضر)صفت- چې حاضر نهٔ وی- چې پهٔ موقع نهٔ وی-

غېرحاضری:(غېر-حا-ض-ری)اسم- واحد- مؤنث- غېر موجودګی- دَ چا پهٔ موقع نیشتوالے-

غېر ذی روح:(غېر-ذی-روح)صفت- بغېر روحه- غېر جاندار- مړ- (عربی، فارسی)-

غېرسیال:(غېر-سیال)صفت- چې سیال نهٔ وی-

غېرشعوری:(غېر-ش-عو-ری)صفت- (۱)چې دَ شعور مطابق نه وی- (۲)بې لهٔ شعوره شوے- (۳)نادانسته-

غېرضروری:(غېر-ضه-رو-ری)صفت- چې ضرورت یې نهٔ وی- فضول- بې فائدې- ناپکاره-

غېرغماز:(غېر-غه-ماز)صفت- دَ لارې خنډ- بهرنے- پردے- دربمګړے-

غېرفانی:(غېر-فا-نی)صفت- نهٔ فنا کېدونکے-

غېرقانونی:(غېر-قا-نو-نی)صفت- دَ قانون خلاف- دَ قاعدې خلاف-

غېرمساوی:(غېر-مه-سا-وی)صفت- چې مساوی نهٔ وی-

غېرمستقیم:(غېر-مس-ته-قیم)صفت- پهٔ ترڅ- بلواسطه- کوږ-

غېرمشروط:(غېر-مش-روط)صفت- بې لهٔ څهٔ شرط نه-

غېرمعمولی:(غېر-مع-مو-لی)صفت- دَ معمول خلاف- دَ دستور خلاف-

غېرمعیاری:(غېر-مع-یا-ری)صفت- دَ معیار مقابل- خراب-

غېرمکمل:(غېر-م-کم-مل)صفت- چې مکمل نهٔ وی- نیمګړے-

غېرملکی:(غېر-مل-کی)صفت- چې دَ ملک نهٔ وی- بهرنے- پردېسی-

غېرممکن:(غېر-م-کن)صفت- چې ممکن نهٔ وی- نهٔ کېدونکے-

غېرمنصفانه:(غېر-مُن-ص-فا-نه)صفت- پهٔ بې انصافی-

غېرمهذب:(غېر-م-هذ-ذب)صفت- بې تهذیبه- بداخلاقه- بې تمدنه- غېر متمدن-

غېرند:(غې-رند)صفت- سست-

غېره:(غې-ره)اسم- واحد- مذکر- ځنګلی خر-

غېره:(غې-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شاړه- بیدیا- صحرا- (۲)قبائیلی علاقه-

غېریت:(غې-ری-یت)اسم- واحد- مذکر- بېګانه توب- اجنبیت-

غېړول:(غې-ړه-ول)مصدر متعدی- غوړول- خوړول- ویړول- دَ غوړول یو قرآت-

غېړون:(غې-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ غېړول-

غېړونکے:(غې-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع غېړونکی- مؤنث غېړونکې- وګورئ غېړول-

غېړونګ:(غې-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ غېړول-

ۍ (څی-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

غېږونه:(غې-ږه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ غېږول-
غېږ:(غېږ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ چا نه دواړه لاسونه تاوونه- (۲)غاړه- بغل- خوا- (۳)خولې- جولې- (۴)دَ دواړو لاسونو نه دَ څهٔ څيز دَ اېښولو يا کښېنولو دَ پاره جوړ خائ-
غېږايستل:(غېږ-ايس-تل)مصدرِ لازم- کبډی کول-
غېږباز:(غېږ-باز)صفت- دَ کشتی ماهر- پهلوان- غېږباس-
غېږبازی:(غېږ-با-زی)اسم- واحد- مؤنث- کُشتی- پهلوانی- غېږباسی-
غېږباس:(غېږ-باس)صفت- وګورئ غېږباز-
غېږباسی:(غېږ-با-سی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غېږبازی-
غېږ پهٔ غېږ:(غېږ-پهٔ-غېږ)متعلق فعل- غاړه پهٔ غاړه- سينه پهٔ سينه-
غېږ روغ بړ:(غېږ-روغ-بړ)اسم- واحد- مذکر- لاس ورکونه او غاړه ورکونه- خوش آمديد-
غېږه:(غې-ږه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ غېږ-
غبش وله:(غبش-وه-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ بېد يو قسم چې خودرو او سور وی-
غبشے:(غې-شے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ غشے- غسے- جمع غبشی-
غبط:(غبط)اسم- واحد- مذکر- قهر- غضب- غصه- (عربی)-
غبل:(غبل)اسم- واحد-مذکر- (۱)جنګی- درګاه- (۲- صفت)پهٔ هوښيارتيا سره دَ څهٔ واقعې نه دَ ځان خلاصولو عادی-
غبل:(غبل)اسم- واحد- مذکر- غوجل-
غبله:(غې-له)اسم- واحد- مذکر- (۱)رمه- ګله- ګډې بزې- (۲)دَ وړو دَ يوې لوبې نوم- جمع غبلې-
غبلې:(غې-لې)اسم- جمع- مؤنث- غلې-
غبلې:(غې-لې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)ګډې بزې- رمې- (۲)دَ ماشومانو يو قسم لوبه-
غبلې غوا:(غې-لې-غوا)اسم- واحد- مؤنث- غوا غبلې- څاروی- ينکر- خناور-
غبمه:(غې-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه غوا چې وار ئې راوړے وی-
غبن:(غبن)تلفظ- دَ " غ " حرف تلفظ-
غبندوک:(غبن-دوک)صفت- وګورئ غبنده-
غبنده:(غبن-ده)صفت- غوونکے- بدکاری کونکے- زناکار-
غبندی:(غبن-دی)صفت- مؤنث- زناکاره-
غبندے:(غبن-دے)صفت- وګورئ غبنده-
غبنړه:(غبن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- نارے- ونړه- دَ څارويو يوه خوراکه-
غبن:(غبن)اسم- واحد- مذکر- غن- ذکر- غين-
غبنه چورے:(غې-نه-چو-رے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم لوبه-
غبيل:(غې-يل)مصدر غوول- غول- جماع کول- کورزالے کول-

ف:(فې)حرف- دَ پښتو الفبې دېرشم او عربي شلم حرف- پهٔ پښتو کښې عموماً دا حرف پهٔ "پ" سره وئیلے شي-

فابریکه:(فاب-ری-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ جامو جوړولو کارخانه- دَ کپړو جوړولو کارخانه- (۱)کارخانه- (م- فارسی)-

فاتح:(فا-تح)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)فتح کونکے- (۲)بریالے- گټندوئے- سوبمن- (۳)شروع کونکے- پرانستونکے- پرانیتونے- (م- فارسی)-

فاتحانه:(فا-ت-حا-نه)متعلق فعل- کامیابی سره- غلبې سره- پهٔ فتحې سره- (م- عربی)-

فاتحه:(فا-ت-حه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شروع- آغاز- (۲)دَ قرآنِ کریم دَ وړومبی سورت نوم- (۳)دَ مړی پهٔ حق کښې دعا غښتنه- پاتیا- پاتا- لاس نیوه- عذر- جمع فاتحگانې فاتحې- (م- عربی)-

فاتر:(فا-تر)اسم صفت- (۱)سست- مراوے- شړت- (۲)نیم گرم- (م- عربی)-

فاجر:(فا-جر)اسم صفت- بدکار- بدنام- اواره- بدکرداره- فاسق- بدلامے- ناشولت- لونډ- گناهگار- (م- عربی)-

فاجر و فاسق:(فا-ج-رو-فا-سق)صفت- مرکب- گناهگار- سخت گناهگار- فاجر-

فاجعه:(فا-ج-عه)اسم- واحد- مؤنث- سخته واقعه- لویه واقعه- حادثه- دردناکه واقعه- (م- عربی)-

فاحش:(فا-حش)اسم صفت- (۱)پهٔ خرابۍ کښې دَ حد نه وتلے- غاوره- (۲)پوچ گو- پوچ خلے- (۳)موذی- ضرر رسونکے- (۴)بخیل- کروتے- (۵)بدکار- بې حیا- بې شرمه- (م- عربی)-

فاحشه:(فا-ح-شه)اسم صفت- بدکاره ښځه- دَ فاحش مؤنث- پلشته- کاسیره- بدلمنې- کسرۍ- (م- عربی)-

فاخته:(فاخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- قمری- کوړکوړی- کوکوشتکه- یوه مرغی- (م- عربی)-

فاخر:(فا-خر)صفت/فاعل- (۱)غرور کونکے- (۲)وياړونکے- فخر کونکے- (م- عربی)-

فاخره:(فاخ-ره)صفت- مؤنث- قیمتی- دَ ډېر قیمت- گران- (م- عربی)-

فار:(فار)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ فاره جمع- مږه- مږک- موږک- (۲)مشک نافه- (م- عربی)-

فارس:(فا-رس)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ایران دَ ملک یوه حصه- (۲)دَ ایران زوړ نوم- (۳)سور- سپور- (م- عربی)-

فارسي:(فار-سي)اسم- واحد- مؤنث- دَ ایران ژبه- دَ ایرانیانو مورنۍ ژبه- (م- فارسی)-

فارسي بان:(فار-سی-بان)اسم صفت- فارسی ویونکے- هغه څوک چې مورنۍ ژبه يې فارسی وی- (م- عربی)-

فارغ:(فا-رغ)صفت- واحد- مذکر- آزاد- چې وزگار وی- (م- عربی)-

فارغ البال:(فا-ر-غل-بال)صفت- بې غمه- خوشحال- بې فکره- ازاد- هغه څوک چې پهٔ آرام او سکون سره ژوند تېروی- (م- عربی)-

فارغ التحصیل:(فا-ر-غت-تح-صیل)صفت- دَ علم نه فارغ- چې علم يې سر ته رسولے وی-

فارغول:(فا-ر-غه-ؤل)مصدر متعدی- (۱)ازادول- وزگارول- نوکری نه وېستل- (۲)رخصتول- بې غمه کول-

فارغېدل:(فا-ر-غې-دل)مصدر لازم- فارغ کېدل- وزگارېدل-

فارغېدن:(فا-ر-غې-دن)حاصل مصدر- وگورئ فارغېدل-

فارغېدنګ:(فا-ر-غې-دنګ)حاصل مصدر- وگورئ فارغېدل-

فارغېدونکے:(فا-ر-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع فارغېدونکی- مؤنث فارغېدونکې- وگورئ فارغېدل-

فارغېدنه:(فا-رې-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وگورئ فارغېدل-

فارغېدهٔ:(فا-رې-غې-دهٔ)حاصل مصدر- وگورئ فارغېدل-

فارق:(فا-رق)اسم صفت- جدا کونکے- بیلونکے- پهٔ غلطه او سمه کښې تمیز کونکے- (م- عربی)-

فارقلیط:(فار-قه-لیط)صفت/اسم- دَ رسولِ کریم صلی الله علیه وسلم دَ پاره پهٔ انجیل کښې یاد شوے نوم- احمد-

فارم:(فا-رم)اسم- واحد- مذکر- (۱)درخواست- دَ خانه پرۍ دَ پاره چاپ شوے کاغذ- (۲)دَ غوا مېښو او چرگانو وغېره دَ نسل زیاتولو ځائ- (۳)دَ کر دَ پاره مخصوصه زمکه- (م- انگریزی)-

فارم:(فام)اسم- واحد- مذکر- شکل- هیئت- پېکر-

فارمول:(فار-مول)اسم- واحد- مذکر- فارمولا- فارموله-

فاروق:(فا-روق)صفت- (۱)پهٔ حق او باطل کښې فرق کونکے- بیلونے- (۲)دَ حضرت عمر رضی الله عنه لقب- (م- عربی)-

فاره:(فا-ره)اسم- واحد- مؤنث- مږک- مږه- (م- عربی)-

فاسد:(فا-سد)اسم صفت- (۱)موذی- شریر- (۲)برباد- تباه- گار- وران- ریجاړ- (م- عربی)-

فاسدول:(فا-سِ-دَ-وَل)مصدر متعدی- (۱)موذی کول- شریرول- (۲)بربادول- تباه کول-

فاسدون:(فا-س-دُ-ون)حاصل مصدر- وگورئ فاسدول-

فاسدونکے:(فا-سِ-د-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع فاسدونکی- مؤنث فاسدونکې- وگورئ فاسدول-

فاسدونګ:(فا-س-دَ-ونګ)حاصل مصدر- وگورئ فاسدول-

فاسدونه:(فا-سِ-دَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وگورئ فاسدول-

فاسدوهٔ:(فا-س-دَ-وهٔ)حاصل مصدر- وگورئ فاسدول-

فاسدېدل:(فا-س-دې-دل)مصدر لازم- (۱)موذی کېدل- شریر کېدل- بدېدل- (۲)تباه کېدل- (۳)بدلاری کېدل- لهٔ لارې وتل-

فاسدېدن:(فا-س-دې-دن)حاصل مصدر- وگورئ فاسدېدل-

ئ" (ئی-رل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لې)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وگورئ تشریحات صفحه ۱

فاسدېدنګ:(فا-س-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ فاسدېدل-

فاسدېدنه:(فا-س-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ فاسدېدل-

فاسدېدونکے:(فا-س-دې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع فاسدېدونکی- مؤنث فاسدېدونکې- وګورئ فاسدېدل-

فاسدېدهٔ:(فا-س-دې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ فاسدېدل-

فاسفورس:(فاس-فو-رس)اسم- واحد- مذکر- یو غېر فلزی کیمیائی عُنصر، علامت ئې P ایټمی وزن ئې ۳۰،۹۸ او اېټمی نمر ئې ۱۵ دے- د هوا په نزدیکت سره سوځی، اُبو کښې ساتلے شی او د شپې لکه د ډیوې ځلیږی-

فاسق:(فا-سق)اسم صفت- بدکار- نهٔ منونکے- بدنام- نافرمان- بدلامے- ګناهګار- (م- عربی)-

فاشیسټ:(فا-شیسټ)اسم- شغه اقتدار چې پهٔ زور سره اخستلے شوے وی- فاشیزم- (م- اِطالوی)-

فاشیزم:(فا-شي-زم)اسم- واحد- مذکر- شغه اقتدار چې په زور سره د کمیونزم او نېشنلزم پهٔ مقابله راغلے وی- داسې پارټی پهٔ اټلی کښې پهٔ ۱۹۲۲ء کښې اقتدار ته راغلې وه او ۱۹۴۲ کښې د مسولینی پهٔ زوال ختمه شوه- (م- اطالوی)-

فاشیستې:(فا-شیس-تې)اسم صفت- وګورئ فاشزم- (م- اطالوی)-

فاصل:(فا-صل)اسم صفت فاعل- بیلونکے- جدا کونکے- داسې خط چې دوه لکیرې جدا کوی- خط فاصل- (م- عربی)-

فاصله:(فا-ص-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د دوو څیزونو تر مینځه ځاې- لرې والے- جدائی- (۲)وګورئ ارتاؤ- (م- عربی)-

فاضل:(فا-ضل)صفت- (۱)کامل- پوئ- پوه- عالم- استاد- (۲)زیاتی- باقی مانده- (۳)د فضیلت خاوند- د مرتبې خاوند- (۴)هوښیار- قابل- (م- عربی)-

فاعل:(فا-عل)صفت- (۱)کار کونکے- فعل کونکے- (۲)اغلام کونکے- (م- عربی)-

فاعلی:(فا-ع-لي)صفت- وګورئ فاعل- چې فاعل ته ئې نسبت کیږی- (م- عربی)-

فاقه:(فا-قه)اسم- واحد- مؤنث- اوږے- پاتې کېدهٔ- نهره- خوراک نهٔ کونه- لوږه- نهار- شوم- احتیاج- (م- عربی)-

فاکولته:(فا-کول-ته)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ کالج یا یونیورسټی کښې د یو علم خاص شعبه- فیلکټی-

فال:(فال)اسم- واحد- مذکر- ښاګوم- پېشن ګوئی- د حادثاتو پهٔ باره کښې پېشن ګوئی- د راتلونکو حالاتو د محکښې نه وړاندې وینا کونه- (م- فارسی)-

فال ایستونکے:(فال-ایس-تون-کے)اسم فاعل- فالی- پېشن ګوئی کونکے- (م- فارسی)-

فال بین:(فال-بین)صفت- (۱)فال کتونکے- (۲)منجم- نجومی- (م- فارسی)-

فال بینی:(فال-بی-نی)اسم- واحد- مؤنث- فال کتنه- فال ایستنه- (م- فارسی)-

فالتو:(فال-تو)اسم صفت- (۱)د ضرورت نه زیات- (۲)خالی- (م- فارسی)-

فالج:(فا-لج)اسم- واحد- مذکر- یوه بیماری چې د بدن پهٔ یوه حصه ولګی نو هغه حصه بې حسه شی- (م- عربی)-

فالک:(فا-لک)اسم- واحد- مذکر- سرخ- بخت- نصیب- قسمت- زمانه- روزګار- اقبال- سعادت- مال- دنیا- دولت-

فال کتنه:(فال-کَ-تهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فال بینی- فال کتل- (۲)چا ته د لاس لکیرې ښودنه-

فال کتونکے:(فال-کَ-تُون-کی)اسم فاعل- واحد- مذکر- فال معلومونکے- فالی-

فال ګر:(فال-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- فال ښودونکے-

فالوده:(فا-لو-ده)اسم- واحد- مؤنث- د ناشیشتې د غټو مېنچو، مېده وازرې، چینو او پیو وغیره نه جوړ خونده رز خوراک پالوده- جمع فالودې-

فالی:(فا-لی)اسم- واحد- مذکر- فال کتونکے- پېشن ګوئی کونکے-

فالیز:(فا-لیز)اسم- واحد- مذکر- پالیز- د خربوزو باغ- د خربوزو پټے-

فام:(فام)اسم- واحد- مذکر- (۱)خط و خال- (۲)یوه لاحقه چې پهٔ پښتو کښې د بخن پهٔ معنٰی استعمالیږی لکه سیاه فام- (م- فارسی)-

فانوس:(فا-نوس)اسم- واحد- مذکر- پانوس- (۱)لالټېن ځراغ- (۲)پهٔ لاره کښې لګېدلے ځراغ- لار ښوه- (م- فارسی)-

فانه:(فا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پانه-

فانی:(فا-نی)صفت- (۱)ختمېدونکے- (۲)ډېر زوړ- بوډا- (م- عربی)-

فائده:(فا-ئې-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نفع- آمدن- نتیجه- اثر- ګټه- سرمایه- (۲)وګورئ درنښتن- (م- فارسی)-

فائده تاوان:(فا-ئې-ده-تا-وان)اسم مرکب- سود و زیان- ګټه تاوان-

فائده من:(فا-ئې-ده-من)اسم صفت- (۱)نفع ورکونکے- سودمن- (۲)مفید-

فائز:(فا-ئز)اسم صفت- (۱)رسېدونکے- (۲)غالب- کامیاب- (م- عربی)-

فائض:(فا-ئض)اسم صفت- (۱)فائده رسونکے- فیض رسان- (۲)ډېر- پرېوانه- ډېر اعلی- (م- عربی)-

فائق:(فا-ئق)اسم صفت- بهتر- د زچتې مرتبې خاوند- برګزېده- (م- عربی)-

فبها:(ف-ب-ها)حرف ندا- ډېر بهتر- آفرین- ډېره ښه ده- (م- عربی)-

فتا:(فتا)اسم صفت- (۱)زړهٔ ور- تکړه- خوانمرد- بهادر- (۲)زلمے- ځوان- (م- عربی)-

فتاح:(فه-تاح)اسم صفت- (۱)غالب- فتح ورکونکے- بریالے- (۲)د الله تعالی یو صفتی نوم- (۳)پرانستونکے- (م- عربی)-

فتح:(فتح)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کامیابی- غلبه- ګټه- بریے- (۲)وګورئ اخستل- (۳)پرانستنه- (۴)زور- فتحه- (م- عربی)-

فتح کول:(فتح-کَ-ول)فعل مصدر- وهل- نیول- اخستل- د خپل قدرت د لاندې

راوستل- برکېدل- قبضه کول- ورختل- کتل-

فتحه:(فت-حه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غالب- پورته- (۲)زور- د حرف د پاسه دا علامت (ـَـ)- (م- عربي)-

فتحه یاب:(فت-حه-یاب)اسم صفت- کامیاب- فتحه مند- غالب- بریالے- گټونکے- (م- فارسي)-

فتراک:(فت-راک)اسم- واحد- مؤنث- یوه رسۍ چې اس باندې د ښکار د ځیزونو ترلو د پاره تړلے شي- (م- فارسي)-

فتنه:(فت-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)آزمائش- ازمېښت- (۲)حېراني- تعجب- اریاني- (۳)فساد- جنگ- (۴)وګورئ آفت- (م- عربي)-

فتنه گر:(فت-نه-گر)اسم صفت- وګورئ پېلاتي- ورانکارے- فتنه پېدا کونکے- فسادي--

فتوت:(ف-تو-وت)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوانمردي- بهادري- (۲)سخاوت- (۳)مېړانه- مړانه- (م- عربي)-

فتوح:(ف-توح)اسم- جمع- مذکر- (۱)کامیابي- گټې- فائدې- (۲)فراخي- (۳)اسودګي- د رزق پېروالے- (م- عربي)-

فتور:(ف-تور)اسم- واحد- مذکر- (۱)مرواے شوے- (۲)ګړبړ- خلل- فساد- (۳)نقص- بې ترتیبي- خرابي- فتنه- شله ګله- (م- عربي)-

فتوی:(فت-وا)اسم- واحد- مؤنث- د شریعت حکم- د شریعت فېصله- (م- فارسي)-

فټ:(فټ)اسم- واحد- مذکر- د گز درېمه حصه- د دولسو انچو لوئ والے- (۲)پښه-

فټ:(فټ)اسم صفت- مناسب- لائق- موزون- درست-

فټافټ:(ف-ټا-فټ)متعلق فعل- سمدستي- فوراً- ژر تر ژره- د سترګو په رپ کښې- په هغه درنګ- په هغه ساعت- ان پن-

فټبال:(فټ-بال)اسم- واحد- مذکر- د لتو(پښو) بال-

فټے مو:(فټ-ټے-مو)د نفرت کلمه-

فج:(فج)اسم- واحد- مؤنث- د دوؤ غرونو په مېنځ کښې لاره- تنګے- تنګه- ناو- وتکے-

فجاحت:(فه-جا-حت)اسم- واحد- مذکر- (۱)وموالے- اومتیا- (۲)کچه چې لا پوخ شوے نه وي- (۳)د لرې مودې ماشوم- (م- عربي)-

فجار:(فج-جار)اسم صفت- د فاجر جمع- بدکاران- غلط کاروونه کونکي- (م- عربي)-

فجر:(فجر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ابهول- بیول- (۲)سپین والے- سپېدې- د سحر رڼا- د نور شغله- سحر- (م- عربي)-

فجع:(ف-جع)اسم- (۱)خفه کونه- غمزده کونه- (۲)ناروغه کول- خوږ منول- (م- عربي)-

فجور:(ف-جور)اسم- واحد- مذکر- بدلمني- بدنامي- بدکاري- بداخلاقي- (م- عربي)-

فحش:(ف-حش)اسم صفت- بې شرمي- د خرابۍ حد نه وتل- کنځل کونه- کنځنه- پوچې او ګنده خبرې- (م- عربي)-

فحاش:(فح-حاش)اسم صفت- پوچ ګو- ګنده وینا کونکے- بدزبانه- (م- عربي)-

فحاشي:(ف-حا-شي)اسم- واحد- مؤنث- بدزباني- پوچ ګوئي- (م- عربي)-

فحوی:(فح-وا)اسم- واحد- مؤنث- مراد- مضمون- معنی- مطلب-

فخ:(فخ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم لومه چې مرغان پرې نیولے شي- تېزندي-

فخر:(فخر)اسم- واحد- مذکر- (۱)تکبر- غرور- (۲)ویاړ- (م- عربي)-

فخري:(فخ-ري)اسم- (۱)غرور کونه- (۲)ویاړ کونه- تکبر کونه- (۳)د فخر- د ویاړ-

فدا:(ف-دا)اسم صفت- قربان- نثار- فداکار- (م- عربي)-

فداکار:(ف-دا-کار)اسم صفت- وګورئ فدا- قرباني ورکونکے-

فداکاري:(ف-دا-کا-ري)اسم- واحد- مؤنث- قرباني- د یو خاص مقصد د پاره د خپل سر او مال نه تېرېدنه-

فدائي:(ف-دا-ئي)اسم صفت- قربانېدونکے- د چا د پاره سر ورکونکے- قربانونکے- جارېدونکے- عاشق- (م- فارسي)-

فدوي:(فد-وي)اسم- واحد- مؤنث- قربانېدونکے- ځارېدونکے- (م- عربي)-

فدیه:(فد-یه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بونګه- هغه رقم چې د قېدي د پرېښودو د پاره ورکړے شي- (۲)سربها- صدقه- سرجارے- سرے-

فر:(فر)اسم- واحد- مذکر- شمشمه- دبدبه- شان و شوکت- دبدبه- (م- عربي)-

فرات:(ف-رات)اسم- واحد- مذکر- (۱)د عراق په ملک کښې د یو سیند نوم- (۲)خوږې اوبه- (م- عربي)-

فراخ:(ف-راخ)اسم صفت- مذکر- وسیع- ازاد- خورور- پلن- لوئ- وګورئ ارت- مؤنث فراخه- (م- عربي)-

فراخوالے:(ف-راخ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- لوئ والے- ارتوالے- پلنوالے-

فراخول:(ف-را-خه-ول)مصدر متعدي- لویول- ارتول- پلنول- ازادول-

فراخون:(ف-را-خ-ون)حاصل مصدر- وګورئ فراخول-

فراخونکے:(ف-را-خ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع فراخونکي- مؤنث فراخونکې- وګورئ فراخول-

فراخونګ:(ف-را-خ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ فراخول-

فراخونه:(ف-را-خ-ؤ-نه)حاصل مصدر- وګورئ فراخول-

فراخوؤ:(ف-را-خ-ؤ)حاصل مصدر- وګورئ فراخول-

فراخه:(ف-را-خه)اسم صفت- مؤنث- لویه- ارته- ازاده- پلنه- (م- عربي)-

فراخي:(ف-را-خي)اسم- مؤنث- اسودګي- خوشحالي- زیاتوالے- ارت والے- پلنوالے-

فراخېدل:(ف-را-خې-دل)مصدر لازم- ارتېدل- پلنېدل- وسیع کېدل- ازادېدل-

فراخېدن:(ف-را-خې-دن)حاصل مصدر- وګورئ فراخېدل-

فراخېدنګ:(ف-را-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ فراخېدل-

فراخېدنه:(ف-را-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ فراخېدل-

فراخېدونکے:(ف-را-خې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع فراخېدونکي- مؤنث فراخېدونکې- وګورئ فراخېدل-

فراخېدهٔ:(ف-را-خې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ فراخېدل-

فرار:(ف-رار)اسم- واحد- مذکر- تېښتېدنه- تېښته- زغل- منډه کونه- (م- عربي)-

فرارول:(ف-را-ر-ول)مصدر متعدي- زغلول- تښتول- غېبول- پټول- پناه کول-

فرارون:(ف-را-ر-ون)حاصل مصدر- وګورئ فرارول-

فرارونکے:(ف-را-ر-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع فرارونکي- مؤنث فرارونکې- وګورئ فرارول-

فرارونګ:(ف-را-ر-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ فرارول-

فرارونه:(ف-را-ر-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ فرارول-

فراروهٔ:(ف-را-ر-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ فرارول-

فراري:(ف-را-ري)اسم- واحد- مذکر- تېښتېدونکے- تېښتېدلے- هغه څوک چې د قانون نه پټ شوے وي-

فرارېدل:(ف-را-رې-دل)مصدر لازم- زغلېدل- تښتېدل-

فرارېدن:(ف-را-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ فرارېدل-

فرارېدونکے:(ف-را-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع فرارېدونکي- مؤنث فرارېدونکې- وګورئ فرارېدل-

فرارېدنګ:(ف-را-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ فرارېدل-

فرارېدنه:(ف-را-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ فرارېدل-

فرارېدهٔ:(ف-را-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ فرارېدل-

فراز:(ف-راز)اسم صفت- (۱)وچت- پورته- (۲)وچتوالے- لوړ ځاے- (۳)ارت- کشاده- (م- عربي)-

فراست:(ف-را-ست)اسم- واحد- مذکر- هوښياري خيرکي- دانائي- عقلمندي- فهم- زيرکي- (م- عربي)-

فراش:(فر-راش)اسم- فرش غوړونکے- غوړونے- ويړونے هغه څوک چې د بادشاه يا د يو امير په محل کښې د فرش غوړولو د پاره مقرر شوے وي- (م- عربي)-

فراغ:(ف-راغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بيکاري- (۲)اسودګي- (۳)فارغ- وزګار- (م- عربي)-

فراغت:(ف-را-غت)اسم- واحد- مذکر- (۱)فرصت- (۲)بيکاري- (۳)اسودګي- خوشحالي- آرام- (م- عربي)-

فراغتونه:(ف-را-غه-تو-نه)د فراغت جمع- سهولتونه- آرام- خوشحالي-

فراق:(ف-راق)اسم- واحد- مذکر- جدائي- هجران- بيلتون- (م- عربي)-

فراقژن:(ف-راق-ژن)اسم صفت- مهجور- هجران وهلے-

فراموش:(ف-را-موش)صفت مفعول- هېر شوے- د ياد نه وتلے- هېر- (م- فارسي)-

فراموشکار:(ف-را-موش-کار)صفت فاعل- هېرېژن- هېرغالے- هغه څوک چې يوه خبره ژر هېروي- هېرندوکے-

فرامين:(ف-را-مين)اسم- جمع- مذکر- د فرمان جمع- حکمونه- احکام- (م- عربي)-

فراوان:(ف-را-وان)اسم صفت- ډېر زيات- د حد نه وتے- ډېر- بسيار- (م- فارسي)-

فرام:(ف-را-مم)اسم صفت- (۱)راټول- غنډ- پنډ- يوځاے- (۲)يوځاے کونه- حاصلونه- موندنه- (م- فارسي)-

فرائض:(ف-را-ئض)اسم- جمع- مذکر- (۱)د فرض جمع- مقرر شوے کار- (۲)د الله تعالى حکمونه- (م- عربي)-

فربه:(فر-به)اسم صفت- واحد- مذکر مؤنث- (۱)تازه- مضبوط- (۲)غټ- خورب- (م- فارسي)-

فربهي:(فر-به-هي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مضبوطي- تازه والے- (۲)څربښ- څربښت- غټوالے- څربوالے-

فرتوت:(فر-توت)اسم صفت- (۱)بوډا- ډېر بوډا- بوډخ- زوړ- (۲)لهٔ کاره وتلے- بېکاره- (م- فارسي)-

فرج:(فرج)اسم صفت- (۱)چاود- سورے- درز- (۲)د ښځې د شرم ځاے- (۳)رڼائي- د مخې رڼا- (۴)د ويرې ځاے- (م- عربي)-

فرج:(فرج)اسم- واحد- مؤنث- خوشي- خوشحالي- لهٔ غمونو خلاصېدنه- (م- عربي)-

فرجاد:(فر-جاد)اسم صفت- دانشور- عقلمند- هوښيار- فاضل- (م- فارسي)-

فرجام:(فر-جام)اسم صفت- (۱)انجام- آخر- (۲)اُمبارکي- (۳)فائده- نفع- (۴)وروستو- (م- فارسي)-

فرحت:(فر-حت)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خوشحالي- سُرور- (۲)ښادي- (م- عربي)-

فرحت ناک:(فر-حت-ناک)اسم صفت- خوشحال- ښادکام- ښاد-

فرخ:(فرخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نېک نصيب- بختور- قسمت خور- (۲)ښائسته- (م- فارسي)-

فرخنده:(فر-خن-ده)اسم صفت- خوش نصيبه- سعادتمند- قسمت خور- بختور- کجير- نېک مرغه- (م- فارسي)-

فرد:(فرد)اسم- واحد- مذکر- (۱)يوازې- تنها- (۲)په نظم کښې يو بېت- (۳)فهرست-

فردا:(فر-دا)اسم- مذکر- (۱)راتلونکے سبا- (۲)راتلونکې ورځ- ګانده- (م- فارسي)-

فردوس:(فر-دوس)اسم- واحد- مذکر- باغ- جنت- بهشت-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "هٔ"(ز-ره)، "هٔ"(يو-يې-دهٔ)

(م- عربی)-.

فردوسی:(فر-دو-سي)اسم صفت- (۱)جنتي- بهشتي- (۲)د شاهنامې د مصنف تخلص چې د طوس(ایران) وسېدونکے وۀ او ابوالقاسم ئې نامه وه- (م- عربی)-

فرزانه:(فر-زا-نه)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هوښیار- خیرک- عقلمند- (۲)د دیوانه ضد- (م- فارسی)-

فرزند:(فر-زند)اسم- واحد- مذکر- پسر- ځوئ- زوئ- جمع فرزندان- (م- فارسی)-

فرزندی:(فر-زن-دی)اسم- زوئ جوړېدنه- پۀ زوئ نیونه- (م- فارسی)-

فرزین:(فر-زین)اسم- واحد- مذکر- وزیر- د شطرنج پۀ لوبه کښې د یوې مُهرې نوم- (م- فارسی)-

فرس:(فرس)اسم- واحد- مذکر- آس-

فرستاده:(فرس-تا-ده)اسم- واحد- مذکر- (۱)قاصد- پېغام رسان- استاځے- (۲)لېږلے شوے- (م- فارسی)-

فرسخ:(فر-سخ)اسم- واحد- مذکر- فرسنګ- تقریباً د شپږ زره ګزو فاصله- زردانګې- کروه- (م- فارسی)-

فرسنګ:(فر-سنګ)اسم- واحد- مذکر- درې میله فاصله- وګورئ فرسخ-

فرسود:(فر-سود)اسم- واحد- مذکر- زړېدنه- بېکاره کېدنه-

فرسوده:(فر-سو-ده)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- زوړ- زړه- د کاره وتے- (م- فارسی)-

فرش:(فرش)اسم- واحد- مذکر- فرش- غالیچه- (م- فارسی)-

فرشته:(ف-رش-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پېغام رسونکے قاصد- (۲)یو نوراني مخلوق- (م- فارسی)-

فرصاد:(فر-صاد)اسم- واحد- مذکر- د توت ونه او مېوه- شهتوت- نباتاتي نوم د پاره وګورئ شاه توت- (م- عربی)-

فرصت:(فر-صت)اسم- واحد- مذکر- (۱)وخت- موقع- (۲)فراغت- رخصت- (م- عربی)-

فرض:(فرض)اسم- واحد- مذکر- (۱)د خدائ حکم- مقرر شوے کار- ضروري حکم- (۲)تصور کونه- ګڼنه- پوهېدنه- (۳)ضروري- لازمي- (م- عربی)-

فرضونه:(فر-ضو-نه)اسم- جمع- (۱)هغه انساني اندامونه چې د پټ ساتلو حکم ئې ورکړے شوے وي- (۲)لازمي کارونه-

فرط:(فرط)اسم- واحد- مذکر- (۱)کثرت- زیاتوالے- زیاتواله- (۲)د غر څوکه- (م- عربی)-

فرع:(فرع)اسم- واحد- مذکر- (۱)شاخ- څانګه- (۲)د مذهب ورزمبي اصول- (م- عربی)-

فرعون:(فر-عون)اسم- واحد- مذکر- (۱)د مصر د یو پخواني بادشاه لقب- (۲- صفت)مجازاً ظالم- غاړه- کبرژن- سرکشه- (م- عربی)-

فرعوني:(فر-عو-ني)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فرعونیت- غرور- تکبر- (۲- صفت)فرعون ته منسوب-

فرغل:(فر-غُل)اسم- واحد- مذکر- (۱)لویه چغه- فرغول- (۲)سستي- لټي- (م- فارسی)-

فرفر:(فر-فر)متعلق فعل- (۱)تېز- جلت- پۀ رواني سره- (۲)ژبې د پاسه پروت- پۀ یادو یاد- حفظ کېدنه-

فرق:(فرق)اسم- واحد- مذکر- (۱)تمیز- جدائي- (۲)فاصله- کمے زیاتے- (۳)سر- د سر کوپړی- (م- عربی)-

فرقان:(فر-قان)اسم- واحد- مذکر- (۱)د رښتیاو او دروغو پۀ مینځ کښې فرق کونکے- فرق کونکے- (۲)قرآن مجید- (م- عربی)-

فرقت:(فر-قت)اسم- واحد- مؤنث- جدائي- فراق- بېلتون- (م- عربی)-

فرقه:(فر-قه)اسم- واحد- مؤنث- جُمات- ګروپ- قبیله- ډله- جمع فرقې- (م- عربی)-

فرقه مشر:(فر-قه-مۀ-شر)اسم صفت- د ډلې مشر- د قبیلې مشر- د جمات مشر-

فرقې:(فر-قې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ فرقه-

فرلانګ:(فر-لانګ)اسم- واحد- مذکر- د میل اتمه حصه- د ۲۲۰ ګز فاصله- (م- انګریزی)-

فرمان:(فر-مان)اسم- واحد- مذکر- (۱)حکم- امر- (۲)ژبنا- (م- فارسی)-

فرمان بردار:(فر-مان-بر-دار)اسم صفت- تابعدار- د حکم پابند- منونکے-

فرمانبرداری:(فر-مان-بر-دا-ري)اسم- تابعداري- د حکم مننه- اطاعت-

فرمائش:(فر-ما-ئش)اسم- پۀ خپله خوښه د یو شي د جوړولو غوښتنه- حکم- امر- فرمان- فرمایښه-

فرمائشي:(فر-ما-ئ-شي)صفت- د فرمائش سره متعلق- سهي دار-

فرمائل:(فر-ما-ئل)مصدر متعدي- حکم کول- د څۀ کار پۀ باره کښې حکم کول- ارشاد کول-

فرموده:(فر-مو-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه خبره چې حکم ئې شوے وي- (۲)قول- بیان- (م- فارسی)-

فرنګ:(ف-رنګ)اسم- واحد- مذکر- براعظم یورپ- د براعظم ایشیا د نمر پرېوانۀ طرفته یو براعظم-

فرنګستان:(ف-رنګ-ګس-تان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ فرنګ-

فرنګے:(ف-رنګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- د فرنګ وسېدونکے- د یورپ باشنده-

فرني:(فر-ني)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم خوراک-

فروري:(فر-و-ري)اسم- واحد- مؤنث- د عیسوي کال دوېمه میاشت-

فروع:(ف-روع)اسم- د فرع جمع- څانګه- اصطلاحاً علم فقه-

فروزان:(ف-رو-زان)اسم صفت- چمکدار- رون- (م- فارسی)-

فروش:(ف-روش)اسم- واحد- مذکر- فروختن مصدر نه امر، چې د لاحقې پۀ طور د اسم نه پس لګي نو اسم فاعل شي- لکه کتاب فروش (کتابونه

خرڅونکے- (۲)دَ خرڅ په مقابله کښې اخستل- (م- فارسی)-

فروشنده:(فَ-رو-شن-ده)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- خرڅونکے- خرڅونے- پلورونکے- پلورونے- (م- فارسی)-

فروعات:(فُ-رو-عات)اسم- جمع- دَ فروع جمع- (۱)شاخونه- (۲)دَ مختلفو قسمونو ټیکسونه او محصول- ارګجه- ګرمانه- (م- عربی)-

فروغ:(فَ-روغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)چمک- رڼا- روښنائی- خلا- ځرکا- (۲)نوم- شهرت- سپوا کېدنه- (م- فارسی)-

فرومایه:(فَ-رو-ما-یه)اسمِ صفت- کمینه- رذیل- ناګجات- پاسو- سپوتک- کچه- (م- فارسی)-

فرهاد:(فَر-هاد)اسم- واحد- مذکر- دَ یو مشهور عاشق نوم چې په کوهکن هم مشهور دے- (م- فارسی)-

فرهنګ:(فَر-هَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)عقل- علم- پوهه- بزرګی- جمع فرهنګونه- (۲)ډکشنری- دَ لغت کتاب- ګرلیکے- (۳)ادب- (م- فارسی)-

فرهنګی:(فَر-هَنګ-ګی)اسم- دَ فرهنګ سره متعلق- کلتوری-

فرهنګ یالے:(فَر-هَنګ-یا-لے)اسمِ صفت- دانا- هوښیار- دانشور- عقلمند-

فریاد:(فَر-یاد)اسم- واحد- مذکر- شور- شکایت- شکوه- واوېلا- آه- دَ تکلیف او سختې زګېروی او اسویلی- سوری- کوربلے- کوکه-

فریادی:(فَر-یا-دی)اسم صفت- فریاد کونکے- خپله سخته او تکلیف بیانونکے- زویرګی او اسویلی کونکے-

فرید:(فَ-رید)اسمِ صفت- (۱)بې مثاله- بې نظیره- یکړ- (۲)دَ یو بزرګ نوم- (۲)دَ شېرشاه سوری اصلی نوم- (م- عربی)-

فریق:(فَ-ریق)اسم- واحد- مذکر- ګروه- جُمات- ټولے- تپه- تام- (م- عربی)-

فریقین:(فَ-ري-قین)اسم- جمع- مذکر- دوه جُماتونه- دوه مخالف ټولګی- مدعی او مدعا علیه- (م- عربی)-

فرېب:(فَ-رېب)اسم- واحد- مذکر- دوکه- حیله- بهانه- چل- مکر- غول- اغدغ- وګوری چمبازی- (م- فارسی)-

فرېب جن:(فَ-رېب-جَن)اسمِ صفت- فرېب ژن- ټګمار- ټګیژن- حیله ساز- مکار- مکرے- چل ولی- چلباز- ټګ- بانېګر- چمباز- چلی- مارغېټے- دوکه مار- دروملی- فرېب ګر-

فرېب ژن:(فَ-رېب-ژَن)اسمِ صفت- وګوری فرېب جن-

فرېب ګر:(فَ-رېب-ګَر)اسمِ صفت- مکار- دوکه باز- چل باز- فرېب جن-

فرېبنه:(فَ-ري-بنَه)اسم صفت- مؤنث- (۱)مکاره- دَ ټګ ښځه- دوکه بازه- دوکه ماره- مکری- مکرژنه- (۲)بدکاره-

فرېبی:(فَ-ري-بي)اسمِ صفت- واحد- مذکر/مؤنث- وګوری فرېب ګر/فرېب جن-

فرېفته:(فَ-رېف-ته)اسم- (۱)دوکه خوړونکے- دوکه شوے- (۲)عاشق- مئین- (م- فارسی)-

فزع:(فَ-زَع)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نوحه- فریاد- واوېلا- (۲)ویره- ډار- (م- عربی)-

فزیالوجی:(فز-یا-لو-جی)اسم- واحد- مذکر- دَ سائنس دَ علم یو شاخ- علم الاعضا-

فژاک:(فَ-ژاک)صفت- واحد- مذکر- ګنده- سخا- خیرن- ناولے- چټل- (م- فارسی)-

فژم:(فَ-ژم)اسم- واحد- مذکر- زړهٔ تنګېدنه- ساډوبی- (م- فارسی)-

فژولنده:(فَ-ژو-لن-ده)اسمِ صفت- دوکه ورکونکے- جال کښې ګېرونکے- (م- فارسی)-

فسات:(فَ-سات)اسم- وګوری فساد-

فساتی:(فَ-سا-تی)اسم صفت- پساتی- شری- زرانکارے- فسادی-

فساد:(فَ-ساد)اسم- واحد- مذکر- فسات- شر- شرارت- جنګ- وګوری پېلات- جمع فسادونه- (م- عربی)-

فسادی:(فَ-سا-دی)اسم صفت- شریر- شرارت کونکے- مُفسد- فساد کونکے-

فسانه:(فَ-سا-نه)اسم- واحد- مؤنث- قصه- افسانه- (م- فارسی)-

فسخ:(فَ-سخ)اسم- (۱)پربېښودنه- ماتونه- بیه راګرځونه- (۲)اراده بدلونه- واپس رازستنه- (۳)سرټکونه- سرماتونه- (۴)ظلم- زیاتے- (کول مصدر)- (م- فارسی)-

فسرده:(فَ-سر-ده)اسمِ صفت- افسرده- (۱)مړاوے شوے- شوک شوک- (۲)یخ- کنګل- منجمد- (م- فارسی)-

فسق:(فسق)اسم- مذکر- دَ خدایٔ دَ حکم خلاف کار کونه- بداخلاقی- بد کار- بدکاری- بدلامی- (م- عربی)-

فسق و فجور:(فسق-وُ-فَ-جور)اسم مرکب- دَ خدایٔ نافرمانی- ګناهونه-

فسون:(فَ-سُون)اسم- واحد- مذکر- (۱)افسون- اوده- پاړه- (۲)ټګی- مکر- (م- فارسی)-

فسون ګر:(فَ-سُون-ګر)اسم صفت- افسون کونکے- اوده کونکے- پاړوګر- (م- فارسی)-

فشار:(فَ-شار)اسم- واحد- مذکر- دباؤ- زور- سیاسی دباؤ- دَ وینې دباؤ- زورنه- ظلم- تاؤ- نښتېخنه-

فشرده:(فَ-شر-ده)اسم- واحد- مؤنث- نچوړی شوے- (م- فارسی)-

فصاحت:(فَ-صا-حَت)اسم- واحد- مؤنث- دَ کلام خوبی- خوش کلامی- بلاغت- ژبه ورتیا- ښې طریقې سره خبرې کونه- په محاورو سره خبرې کونه- (م- عربی)-

فصاد:(فَص-صاد)اسم- واحد- مذکر- پرزمونے- زینه ویستونکے- فصد لګوونکے- رګ وهونکے- جراح-

فصد:(فصد)اسم- دَ رګ نه زینه ایستنه-

فصل:(فَ-صَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)جدائی- جداکونه- بیلونه- (۲)وخت- موسم- (۳)دَ کر حاصل پیداوار- جمع فصلونه- (م- عربی)-

فصل:(فَ-صل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کتاب یوه حصه- (۲)بند- جوړ-
فصلانه:(فص-لا-نه)متعلق فعل- فصل په فصل- دَ فصل-
فصلي:(فص-لي)اسم صفت- موسمي ځېزونه- داسې مېوې او غله چې په خاص موسم کښې کېږي- فصل سره منسوب- (م- فارسی)-
فصيح:(فَ-صيح)اسم صفت- (۱)خوږ آواز- ترنم- (۲)خوږ اوازه- خوش بيانه- خوش تقريره- مؤنث فصيحه- (م- عربی)-
فصيل:(فَ-صيل)اسم- ښارپناه- شيرازه- مندرو- (م- فارسی)-
فضا:(فَ-ضا)اسم- (۱)فراخي- پلنوالے- (۲)محيط- ماحول- (۳)وت- تشه- (۴)کېفيت- رونق- (م- عربی)-
فضاحت:(فَ-ضا-حت)اسم- واحد- مذکر- رسوائي- بدنامي- شرمندګي- اشواينه- (م- عربی)-
فضائل:(فَ-ضا-ئل)اسم- جمع- دَ فضيلت جمع- ښه خويونه- علوم- (م- فارسی)-
فضائي:(فَ-ضا-ئي)اسم صفت- هوائي- خلائي- فضا سره متعلق-
فضل:(فَ-ضل)اسم- (۱)بخشش- (۲)زياتے- په علم کښې زياتے- (۳)دانائي-
فضلا:(فَ-ضَ-لا)اسم- دَ فاضل جمع- هوښيار خلق- عالمان- دانشوران- (م- عربی)-
فضول:(فُ-ضول)اسم- واحد- مذکر- (۱)زياتوالے- ډېروالے- (۲)کمينه- سپک- رذيل- بې موده- (۳)پېرت- (۴)ارتاويزه-
فضول خرچ:(فُ-ضول-خرچ)صفت- (۱)بې ځايه پېسې لګونکے- فضول خرچ کونکے-
فضول خرچي:(فُ-ضول-خر-چي)اسم- مؤنث- وګورئ فضول خرڅي-
فضول خرڅ:(فُ-ضول-خرڅ)صفت- وګورئ فضول خرچ-
فضول خرڅي:(فُ-ضول-خر-څي)اسم- مؤنث- (۱)بې ځايه خرڅ کونه- (۲)بدخرڅي- لوفري- بې خرته خرڅ کونه- فضول خرچي-
فضولي:(فُ-ضو-لي)اسم- (۱)حقارت- کم عقلي- ګستاخي- بې ادبي- (۲)بې فائدې کېدنه- (م- عربی)-
فضيحت:(فَ-ضي-حت)اسم- مؤنث- بې شرمي- رسوائي- ندامت- بدنامي- (م- عربی)-
فضيلت:(فَ-ضي-لت)اسم- واحد- مؤنث- خوبي- بزرګي- زياتوالے- هوښياري- کمال- (م- عربی)-
فطر:(فطر)اسم- (۱)روژه ماتونه- افطاري- روژه ماتے- (۲)شروع کونه- آغاز- (۳)شلونه- (۴)پيدا کونه-
فطرت:(فط-رت)اسم- واحد- مؤنث- پېدائش- خټه- خوړے- پېداوښت- خمير- خمېر- طبيعت- طبع- (م- عربی)-
فطرتاً:(فط-ره-تن)متعلق فعل- فطرتي طور- قدرتي- دَ فطرت له مخې- طبعاً- (م- عربی)-
فطري:(فط-ري)اسم- قدرتاً- قدرتي- فطرتي- پېدائشي- طبعي- (م- عربی)-

فطنت:(فط-نت)اسم- واحد- مؤنث- دانائي- خيرکي- علم- (م- عربی)-
فطير:(فَ-طير)اسم- واحد- مذکر- دَ خمير ضد- فطيره- پتيره- چخمټه-
فعال:(فع-عال)اسم- واحد- مذکر- کامل- ډېر زيات کار کونکے- چست و چالاک- منظم- پياوړے- تکړه-
فعاليت:(فع-عا-لي-يت)اسم- واحد- مؤنث- مهارت- چستي- چالاکي- تکړه توب- پياوړتوب- سرګرمي- (م- عربی)-
فعل:(فعل)اسم- واحد- مذکر- (۱)کار- کړه- چاره- کردار- عمل- شوے کار- (۲)هغه کلمه چې پکښې دَ څۀ کار بيان وي- (م- عربی)-
فعل متعدي:(فع-ل-مُ-تع-دي)هغه فعل چې دَ فاعل نه پس په مفعول تمام شي- مفعول لرونکے فعل-
فعل لازم:(فع-ل-لا-زم)هغه فعل چې مفعول يې نۀ وي- هغه فعل چې صرف په فاعل تمام شي
فعلي:(فع-لي)متعلق فعل- وګورئ فعل- دَ فعل- دَ فعل متعلق- (م- عربی)-
فغ:(فغ)اسم- (۱)يار- دوست- (۲)بت- (م- فارسی)-
فغان:(فَ-غان)اسم- واحد- مؤنث- شور- فرياد- واوېلا- ګيله- شکايت- افسوس- آه- (م- فارسی)-
فغفور:(فغ-فور)اسم- واحد- مذکر- (۱)اصل کښې "فغ پور" دے يعنې دَ بت خوئ- دَ ديوتا خوئ- (۲)دَ چين دَ پخوانو بادشاهانو لقب-
فق:(فق)اسم صفت- مراوے- حيران و پرېشان- زير- (م- فارسی)-
فقاهت:(فَ-قا-هت)اسم- واحد- مؤنث- هوښياري- دانائي- خبردارے حاصلونه- پوهنه- (م- عربی)-
فقدان:(فق-دان)اسم- واحد- مذکر- ورکېدنه- ورکونه- نيشتوالے- نيشت- (م- عربی)-
فقر:(فقر)اسم- واحد- مذکر- نيستي- احتياج- درويشي- عاجزي- مختاجي- فقيري- (م- عربی)-
فقره:(فق-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)عبارت- جمله- (۲)دَ ملا هډوکے- دَ ملا مرې- شمزۍ- (م- عربی)-
فقط:(فَ-قط)متعلق فعل- بس- کافي- يوازې- صرف- (م- عربی)-
فقه:(ف-قه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)علم شريعت- (۲)تلاش- جستجو- تحقيق- پوهنه- فهم- (م- عربی)-
فقها:(فُ-قَ-ها)اسم- جمع- مذکر- دَ فقيه جمع- ډېر پوهې- دَ علم شريعت عالمان- (م- عربی)-
فقيد:(فَ-قيد)اسم صفت- (۱)بې مثاله- بې نظيره- (۲)ورک- (م- عربی)-
فقير:(فَ-قير)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)خوار- محتاج- سائل- (۲)عاجز- غريب- دَ امير ضد-
فقيري:(فَ-قي-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ فقير پېشه- ګدائي- لاس نيونه- (۲)بې وزلي- نېستي-
فک:(فک)اسم- (۱)جدا کونه- بېلونه- (۲)ژامه- زامه- (م- عربی)-

ي (څې-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پيا-لي)، ئ (تن-دې) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

فکاهت:(فَ-کا-هَت)اسم- فکاهي- مذاق- مسخرې- خوش طبیعتي- مزاح- ظرافت- (م- عربي)-

فکاهي:(فَ-کا-هِي)اسم- وګورئ فکاهت- (م- عربي)-

فکر:(فِ-کر)اسم- واحد- مذکر- خیال- سوچ- اندېښنه- (۲)فهم- عقل- غم- چرت- پروے- رے- احتیاط- (م- فارسي)-

فکرمن:(فِ-کر-مَن)اسم صفت- فکرمند- اندېښناک- چرتي-

فکري:(فِک-رِي)صفت- خیالي- سوچي- وهمي- فهمي-

فګار:(فِ-ګار)اسم صفت- واحد- مذکر- زخمي- مجروح- ژوبل- پرهارژلے- خوږ- (م- فارسي)-

فلاح:(فَ-لاح)اسم- واحد- مؤنث- ژغورنه- حفاظت- کامیابي- خوشحالي- (م- عربي)-

فلاحت:(فَ-لا-حَت)اسم- واحد- مؤنث- زراعت- کرکرونده- (م- عربي)-

فلاخن:(فَ-لا-خَن)اسم- واحد- مؤنث- مچنوغزه- مچوغنه- بلیچون- ترنکوټه- (م- فارسي)-

فلاسفه:(فَ-لا-سه-فه)اسم- جمع فلسفیان- دَ فلسفي جمع- (م- عربي)-

فلاش:(فَ-لاش)اسم- واحد- مذکر- دَ تاش پهٔ پاڼو کېدونکې یوه لوبه چې خالص جواري وي-

فلاکت:(فَ-لا-کَت)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بدبختي- غربت- (۲)تکلیف- مصیبت- نیستي- (م- عربي)-

فُلان:(فُ-لان)اسم ضمیر- د چا نامعلومه یا غېرموجوده سړي یادولو لفظ- غېر مقرر سړے یا څیز- فلانکے- فلانے-

فلان دست مال کول:(فلان-دست-مال-کَ-ول)فعل- چاپلوسي کول- پرپلي کول-

فلان دسمان:(فلان-دس-مان)کلمه- (۱)ردي بدې- سپکې سپاندې- (۲)اندامِ نهاني- کُس-

فلانکے:(فُلان-کے)اسم ضمیر- فلانے- چې نوم يُ وانهٔ خستے شي او بل کَس پرې پوئ شي- پلانے- فلان-

فلانے:(فُلا-نے)اسم ضمیر- فلانکے- فلان- (م- فارسي)-

فلز:(فلز)اسم- واحد- مؤنث- کچه دهاتونه لکه تانبه، زر- (م- عربي)-

فلزي:(فل-زي)صفت- فلز سره متعلق- دَ فلز نه جوړ-

فلس:(فَلس)اسم- واحد- مذکر- دَ تانبې یوه وړوکې سکه- لکه پیسه- (م- عربي)-

فلسفه:(فل-س-فه)اسم- واحد- مؤنث- علم موجودات- دَ حکمت علم-

فلسفي:(فل-س-في)صفت- حکیم- دانشور- هوښیار- عالم- (م- عربي)-

فلفل:(فل-فل)اسم- واحد- مذکر- تور مرچکے- (م- عربي)-

فلق:(فلق)اسم- دَ سحر سپیدي- (م- عربي)-

فلق:(فلق)متعلق فعل- شلول- چول- (م- عربي)-

فلک:(فَ-لک)اسم- واحد- مذکر- (۱)آسمان- (۲)قسمت- (م- عربي)-

فلم:(فِ-لم)اسم- واحد- مذکر- سنیما- بائیسکوپ- (م- انګریزي)-

فلوس:(فُ-لوس)اسم- دَ فلس جمع- وړې سکې- (م- عربي)-

فله:(فَ-له)اسم- واحد جمع- مؤنث- دَ غوا مېښې وغېره دَ درې ورځو پئ- کنډ- کنډاتي- (م- فارسي)-

فلیته:(فَ-لي-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ څراغ باتي- فتیله- پتیله- باتي- (م- فارسي)-

فلیل:(فَ-لیل)اسم- واحد جمع- مذکر- دَ عطرو پهٔ شان یو خوشبویه تېل- عطر فلیل یوځایُ هم ونیلے کیږي- (م- فارسي)-

فم:(فم)اسم- خُلهٔ- (م- عربي)-

فم بسته:(فم-بس-ته)اسم صفت- چپ- خاموش- هغه څوک چې خُله دَ خبرو نه بنده ساتي- (م- عربي)-

فن:(فن)اسم- (۱)هنر- پوهه- تدبیر- حیله- (۲)مال- (۳)ارټ- (م- عربي)-

فنا:(فَ-نا)اسم- واحد- مؤنث- ورکېدنه- مرګ- تباهي- زوال- (م- عربي)-

فنا کول:(فَ-نا-کَ-وَل)مصدر لازم- ختمول-

فنجان:(فن-جان)اسم- واحد- مؤنث- پیالي- دَ قهوې وغېره پیالي- (م- فارسي)-

فندق:(فن-دُق)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ببرې پهٔ شان دَ سُور رنګ یوه مېوه- (۲)چالاک ماشوم چې دَ عمر پهٔ لحاظ زیات څیرک وي- (م- فارسي)-

فني:(فَ-ني)اسم صفت- هنري- فن پورې مربوط-

فواحش:(فَ-وا-حش)اسم- دَ فاحشه جمع- (۱)بدکارې ښځې- (۲)دَ بداخلاقي کارونه- (م- عربي)-

فواد:(فَ-واد)اسم- زړهٔ- ضمیر- قلب- (م- عربي)-

فواره:(فو-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ اوبو چینه- دَ دارې پهٔ شکل دَ اوبو راوتنه- (م- فارسي)-

فواق:(فو-واق)اسم- جمع- مذکر- اټکي- (م- عربي)-

فواکهه:(فو-وا-کَ-هه)اسم- دَ فاکهه جمع- مېوې- فروټ- (م- فارسي)-

فوائد:(فَ-وا-ئد)اسم- دَ فائدې جمع- نفعې- ګټې- (م- عربي)-

فوت:(فوت)اسم- واحد- مذکر- مړ- مړ شوے- (م- عربي)-

فوتي:(فو-تي)متعلق فعل- وګورئ فوت-

فوټو:(فو-ټو)اسم- واحد- مذکر- څېره- عکس- تصویر-

فوج:(فوج)اسم- واحد- مذکر- جمات- لښکر- پوځ- (م- عربي)-

فوجداري:(فوج-دا-ري)اسم- (۱)دَ فوج افسري- (۲)مجرمانه حرکت- (۳)جګړه- جنګ- (م- فوج عربي، داري فارسي)-

فوجي:(فو-جي)اسم صفت- دَ فوج فرد- پوجي- پوځي- (م- عربي)-

فوځ:(فوځ)اسم- واحد- فوج- پوج- عسکر- آرمي- فوز- جمع فوځونه-

فوځي:(فو-ځي)اسم صفت- فوجي- عسکري- دَ فوج فرد-

فوراً:(فو-رَن)متعلق فعل- دا وخت- ژر تر ژره- ډېر ژر- دستي- ژر- (م- فارسي)-

فورم:(فو-رم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ فارم-

زبر "(ج-بَه-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(فو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "ه"(زَ-ړه)، "ۀ"(پو-هې-دهٔ)

فوري:(فو-ري)متعلق فعل- ناګهانه- سمدستي- فوراً- (م- فارسي)-

فوز:(فوز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ فوځ-

فوفنا:(فو-ف-نا)اسم صفت- (۱)بيخي ورک- نابوده- (۲- اسم)ورانېدنه- ختمېدنه-

فوق:(فوق)اسم- واحد- مذکر- (۱)اوچت- پورته- ختلے- بر- پاس- (۲)زياتے- (۲)څوکه- (م- عربي)-

فوقاني:(فو-قا-ني)اسم- (۱)دَ پورته- اوچت- برنے- پاسنے- (۲)هغه تورے چې پورته پرې نکته وي- (۲)اعلیٰ- (م- فارسي)-

فوقيت:(فو-قي-يت)اسم- اوچتوالے- بزرګي- برتري- (م- عربي)-

فولاد:(فو-لاد)اسم- پولاد- دَ اعلیٰ قسم اُسپنه- (م- فارسي)-

فولادي:(فو-لا-دي)اسم صفت- (۱)دَ اُسپنې جوړ- پولادي- (۲)سخت- (م- فارسي)-

فولکلور:(فول-کلور)اسم- اولسي ادبيات- اولسي پوهه- فوکلور-

فولکلوري:(فول-کلو-ري)اسم صفت- وګورئ فولکلور- دَ فولکلور سره متعلق- (م- فارسي)-

فوليل:(فو-ليل)اسم- واحد- مذکر- پونيل- فليل- (م- فارسي)-

فهرست:(فه-رست)اسم- واحد- مذکر- فرد- اسم نويسي- نوم ليکے- (م- عربي)-

فهم:(ف-هم)اسم- واحد- مذکر- پوهه- عقل- (م- عربي)-

فهميده:(فه-مي-ده)اسم صفت- دانا- هوښيار- پوئ- پوه- (م- عربي)-

فهيم:(ف-هيم)اسم صفت- ډېر پوئ- زيات پوئ- دَ لوئ فهم خاوند- (م- عربي)-

في:(في)حرف جار- (۱)پهٔ معنیٰ کښې دَ دننه- (۲)دَ غرمې نه پس دَ هر څهٔ سورے- (م- عربي)-

في البديه:(فل-ب-دي)متعلق فعل- (۱)دا وخت- (۲)دَ سوچ نه بغير شعر وئيل- (۲)ناګهانه- بې لهٔ فکره- (م- عربي)-

في الجمله:(فل-جم-له)متعلق فعل- څهٔ نه څهٔ- بيا هم- دا مطلب- خلاصه دا ده- (م- عربي)-

في الحال:(فل-حال)متعلق فعل- دا وخت- اوس- في الفور- في الوقت-

في الفور:(فل-فور)متعلق فعل- في الحال- (م- عربي)-

في النار:(فن-نار)متعلق فعل- پهٔ اور کښې- (م- عربي)-

في الوقت:(فل-وقت)متعلق فعل- موجوده وخت- في الحال- (م- فارسي)-

في سبيل الله:(في-س-بي-لل-لا)دَ خدائ پهٔ لار کښې- دَ خدائ دَ پاره- (م- عربي)-

فياض:(ف-ياض)اسم صفت- فيض رسونکے- سخي- خوانمرد- (م- عربي)-

فيته:(في-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پيته- شرشره- کنکوره- کره- (م- فارسي)-

فيس:(فيس)اسم- اجرت- هغه رقم چې طالب علمان يَ سکول يا کالج کښې مياشت پهٔ مياشت يا کال پهٔ کال ورکوي- پهٔ کلينک کښې دَ ډاکټر دَ مريض دَ کتو اجرت- (م- انګريزي)-

فيصد:(في-صد)اسم- واحد- مذکر- تناسب- (م- عربي)-

فيصدي:(في-ص-دي)اسم- پهٔ تناسب سره- (م- عربي)-

فيل:(فيل)اسم- واحد- مذکر- هاتي- اتي- يو مشهور غټ ځناور- (م- عربي)-

فيل اندامې:(فيل-ان-دا-مې)اسم صفت- دَ هاتي غُندې اندام لرونکې- دَ ښځو خاص قسم- (م- فيل عربي، اندام فارسي)-

فيلبان:(فيل-بان)اسم- واحد- مذکر- مهاوت- هاتي چلونکے- (م- فيل عربي، بان فارسي)-

فيل چشم:(فيل-چ-شم)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ زړو وړو سترګو خاوند- تنګ سترګے- (م- فيل عربي، چشم فارسي)-

فيلي:(في-لي)اسم- بهانه جوړونکے- حيله باز- (م- هندي)-

فيلسوف:(في-ل-سوف)اسم- (۱)عقلمند- دانا- ځيرک- هوښيار- (۲)مکار- (۲)حکيم- صوفي- عالم- (م- يوناني)-

فير:(فير)اسم- واحد- مذکر- دَ ټوپک خلاصېدنه- حمله- وار- (م- انګريزي)-

فيروز:(في-روز)اسم صفت- نيک بخت- سعادتمند- خوش نصيبه- کامياب- (م- فارسي)-

فيروزمندي:(في-روز-من-دي)اسم- واحد- مؤنث- کاميابي- فتح- خوشحالي- (م- فارسي)-

فيروزه:(في-رو-زه)اسم- اسماني رنګ لرونکے يو قيمتي کاڼے- (م- فارسي)-

فيروزي:(في-رو-زي)اسم- (۱)کاميابي- برے- غلبه- (۲- صفت)اسماني رنګے-

فيشن:(فے-شن)اسم- (۱)ځان ښائسته کونه- ځان جوړونه- (۲)رواج- دستور- (م- انګريزي)-

فيشني:(فے-شه-ني)اسم- (۱)ځان جوړونکے- ځان ښائسته کونکے- ډولکے-

فيصل:(فے-صل)اسم- حاکم- منصف- ثالث- فيصله کونکے- (م- عربي)-

فيصل نامه:(فے-صل-نا-مه)اسم- راضي نامه- جوړه- روغه- ليکلې فيصله-

فيصله:(فے-ص-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قطع- پرېکونه- (۲)ختمونه- (۲)انصاف- (۴)ډګري- (م- عربي)-

فيصلې:(فے-ص-لې)اسم- جمع- وګورئ فيصله-

فيض:(فيض)اسم- واحد- مذکر- بخښل- خير- مهرباني- نفع- فائده- (م- عربي)-

فيضان:(فے-ضان)اسم- وګورئ فيض-

فئ:(فئ)اسم- واحد- مذکر- سېورے- سورے- سايه-

---

ق:(قاف)حرف- د عربي د حروف تهجي يوويشتم د فارسي څليريشتم او د پښتو يو دېرشم حرف- دا د عربي خاص حرف دے او د پښتو په شغه الفاظو کښې استعماليږي کوم چې د عربي نه پښتو ته راغلي دي-

ق:(ق)د قمري مخفف- قمري کال-

قاب:(قاب)اسم- (۱)لويه رکيبي- لويې تال- (۲)چوکاټ- فريم-

قاب:(قاب)اسم- (۱)مقدار- اندازه- (۲)د کمان د دستې نه يو گټ پورې فاصله- (م- عربي)-

قابض:(قا-بض)اسم صفت- (۱)قبضه کونکے- قبضه کښې اخستونکے- نيونکے- (۲)هغه خوراک يا دارو چې قبض پيدا کوي- (م- عربي)-

قابل:(قا-بل)اسم صفت- (۱)منونکے- قبلونکے- (۲)پوې- پوه- هوښيار- دانا- ذهين- لائق- پوهه- (۳)اهل- موزون- وړ- (م- عربي)-

قابلا:(قاب-لا)اسم- واحد- مؤنث- کابله- ديبرې-

قابلتوب:(قا-بل-توب)اسم- لياقت- ذهين والے- پوې والے- قابليت-

قابله:(قا-ب-له)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)هوښياره ښځه- (۲)داني- (م- عربي)-

قابليت:(قا-بي-لي-يت)اسم- قابلتوب- هوښياري- داناني- موزونيت- ذهانت- لائق توب- اهليت- (م- عربي)-

قابو:(قا-بو)اسم- (۱)اختيار- طاقت- وس- (۲)محل- موقع- (۳)ابلا ومله- (۴)تيار- چمتو- آغر-

قابوچي:(قا-بو-چي)اسم صفت- (۱)دربان- څوکيدار- (۲)خودغرض- سپک- مکرژن- مطلب پرست- جمع قابوچيان-

قابيل:(قا-بيل)اسم- واحد- مذکر- د حضرت آدم عليه السلام مشر خوئ چې خپل ورور ې قتل کړے وو- د دنيا وړومبے قاتل- (م- سرياني)-

قاپ:(قاپ)اسم- واحد- مذکر- پلېټ- بونګه-

قات:(قات)اسم صوت- د چرګې شور- د چرګې آواز- کړت- (م- فارسي)-

قات:(قات)اسم- واحد- مذکر- قحط- وچکالي- هغه کال چې د غلې داني کموښت کمے پکښې راشي-

قاتر:(قا-تر)اسم- واحد- مذکر- قاطر- کچر- قچر- (م- ترکي)-

قاتل:(قا-تل)اسم صفت- قتل کونکے- (م- عربي)-

قاتي:(قا-تي)اسم- قحطي- قات- د خوراک ښناک نشت والے-

قاتي ملخ:(قا-تي-مو-لخ)اسم- واحد جمع- مذکر- د قاتي (قحطي) ملخ-

قادر:(قا-در)اسم صفت- واحد- مذکر- د قدرت مالک- طاقتور- غالب-

قادري:(قا-دري)اسم- واحد- مؤنث- کرته- کمږے- حلقه- لنډے- اندرکه- چپن-

قار:(قار)اسم- واحد- مؤنث- غصه- قهر-

قار:(قار)اسم صوت- واحد- مذکر- د کارغه آواز- کاں کاں- تاغ- (م- فارسي)-

قارجن:(قار-جن)اسم صفت- قهرژن- غصه ناک- قهر لرونکے- قارژن- قارندونکے- لنډخويه- قهري-

قارژن:(قار-ژن)اسم صفت- وګورئ قارجن-

قارغان:(قار-غان)اسم- د کارغه جمع-

قارغه:(قار-غه)اسم- واحد- مذکر- يو تور رنګے مارغه-

قارندوکے:(قا-رن-دو-کے)اسم صفت- وګورئ قارجن-

قارون:(قا-رون)اسم- واحد- مذکر- د يو بخيل دولت مند سړي نوم- (م- عربي)-

قاري:(قا-ري)اسم صفت- د قاعدې او د اصولو مطابق د قرآن شريف تلاوت کونه-

قارېدلے:(قا-رې-ده-لے)اسم صفت- غصه شوے- اوچت شوے-

قاز:(قاز)اسم- واحد- مذکر- يو مارغه چې اکثر په غرونو کښې ې ښکار کيږي- کوتنه- کوتنه- هيلۍ- بته- مرغابي-

قاسط:(قا-سط)اسم صفت- (۱)ظالم- ستمګر- د حد نه وتلے- (۲)نياوے- منصف- عادل- (م- عربي)-

قاسم:(قا-سم)اسم- واحد- مذکر- (۱)تقسيمونکے- (۲)قسم کونکے- (م- عربي)-

قاش:(قاش)اسم- واحد- مذکر- (۱)وروزه- (۲)تراشلے- څيرلے- (۳)د تماچې غلاف- (۴)دړه- ترازه- ټکره- جمع قاشونه- (م- ترکي)-

قاشق:(قا-شق)اسم- (۱)چمچه- کاشوغه- (۲)څمڅې-

قاشقاش:(قاش-قاش)اسم- د يو بوټي نوم چې نرۍ نرۍ دانې کوي- پوپه- د افيمو بوټے- خشخاش- قشقاش- د کوکنارو د غوټيو تخم- د نباتاتي نوم د پاره وګورئ خاشخاش-

قاشوغه:(قا-شو-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چمچه- قاشق- (۲)پوکه-

قاصد:(قا-صد)اسم صفت- پيغام رسونکے- سفير- پيغام رسان- ځرے- پيک- (م- عربي)-

قاصر:(قا-صر)اسم صفت- عيب ناک- مغلوب- مجبوره- نقصاني- (م- عربي)-

قاضي:(قا-ضي)اسم صفت- واحد- مذکر- منصف- جج- د زړه بداوي شرعي فيصلې کونکے- (م- عربي)-

قاضيان:(قاض-يان)اسم- د قاضي جمع- وګورئ قاضي-

قاضي توب:(قا-ضي-توب)اسم- واحد- مذکر- د زړه بداوي د شرعي فيصلو کار کونه-

قاضي القضات:(قا-ضي-يل-قض-ضات)اسم صفت- مشر قاضي- د قاضيانو قاضي-

قاطر:(قا-طر)اسم- واحد- مذکر- کچر- قاتر- (م- ترکي)-

قاطع:(قا-طع)اسم صفت- پرېکونکے- ختمونکے- غځونکے- (م- عربي)-

قاطن:(قا-طن)اسم- واحد- مذکر- وسېدونکے- ځاې لرونکے- مېشت- استېدونے- مقيم- (م- عربي)-

زبر(ح-به-ره)، زورکے(شل)، پېښ(نو-کا-ره)، زېر(ک-تاب)، جزم(شکون)، ه(ز-ره)، ۀ(پو-ښې-ده)

قاعد:(قا-عد)اسم- واحد- مذکر- ناست- (م- عربی)-

قاعدتاً:(قا-ع-دَ-تَن)اسم- رسمي- اُصولي-

قاعده:(قا-ع-ده)اسم- واحد- مؤنث-(۱)رسم- دود- (۲)طریقه- اصول- (۳)تره- (۴)آئین- (م- عربی)-

قاغ:(قاغ)اسم صفت- (۱)رِج- خوار- ډنګر- (م- فارسی)- (۲ اسم صوت)دَ قارغهٔ اواز-

قاغمه:(قاغ-مه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم کپړه- (م- فارسی)-

قاغه:(قا-غه)اسم- واحد- مؤنث- کاغه- دَ قارغهٔ مؤنث-

قاف:(قاف)اسم- (۱)یو قسم سبزي- (۲)دَ یو غر نوم چي پهٔ تړانس کاکیشا کښې واقع دے- (م- عربی)-

قافله:(قا-ف-له)اسم- واحد- مؤنث- کاروان- دَ سفر پهٔ حال کښې دَ سوداګرو، مسافرو وغیره ډله- (م- عربی)-

قافله باشي:(قا-ف-له-با-شي)اسم صفت- دَ کاروان مشر-

قافیه:(قا-فې-یه)اسم- هغه حرفونه او حرکات چي دَ شعر پهٔ آخر کښې راځي- (م- عربی)-

قاقم:(قا-قُم)اسم- واحد- مذکر- دَ یو ځناور څرمن چي پوستین تري جوړولے شي- (م- ترکی)-

قال:(قال)اسم- واحد- مذکر- خبرې- بیان- (م- عربی)-

قالب:(قا-لب)اسم- واحد- مذکر- شکل- بدن- ډانچه- سانچه- جسم- (م- عربی)-

قالي:(قا-لي)اسم- واحد- مؤنث- ډیروکے قالین- (م- فارسی)-

قالي دریاب:(قا-لي-در-یاب)اسم- (۱)یو سمندر- یو خیالي سمندر- (۲)بحر- قاري دریاب- جمع قالي دریابونه-

قالین:(قا-لین)اسم- واحد- مذکر- دَ ډیر لویه غالیچه- غالي- ذلین- جمع قالینونه- (م- فارسی)-

قالۍ:(قا-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- غالي- ووړوکے قالین-

قالینچه:(قا-لین-چه)اسم- واحد- مؤنث- زلیچه- غالیچه- وړوکے قالین-

قام:(قام)اسم- (۱)قوم- ملت- (۲)خپل- ذات- جمع قامونه-

قامت:(قا-مت)اسم- واحد- مذکر- بدن- دَ بدن وُدوالے-

قام والي:(قام-وا-لي)اسم صفت- قومولي- وروروولي- قامولي-

قاموس:(قا-مُوس)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژور سیند- (۲)لغت- ډکشنري- (م- عربی)-

قانع:(قا-نع)اسم صفت- صبر کونکے- پهٔ خپل قسمت صبر کونکے- (م- عربی)-

قانغوزک:(قان-غو-زک)اسم- واحد- مذکر- یو قسم حشره- غوزاړے- مرغټانه- (م- فارسی)-

قانون:(قا-نون)اسم- واحد- مذکر- دستور- آئین- طریقه- اصول- رسم- (م- عربی)-

قانوناً:(قا-نو-نَن)متعلق فعل- دَ قانون او قاعدې مطابق- (م- عربی)-

قانوني:(قا-نو-ني)اسم- آئیني- اصولي- رسمي- دستوري-

قاهر:(قا-هر)اسم صفت- غصه ناک- قهرناک- (م- عربی)-

قائد:(قا-ئد)اسم صفت- مشر- بزرګ- پېشوا- سرخېل- (م- عربی)-

قائزه:(قائ-زه)اسم- واحد- مؤنث- تبزه- واګې- ملونه- واګه-

قائق:(قا-ئق)اسم- واحد- مذکر- وړوکې کشتۍ- ماکو- (م- عربی)-

قائل:(قا-ئل)اسم- (۱)وېونکے- (۲)منونکے- اقرار کونکے- معتقد- (۲)قبلوله کونکے- دَ غرمې اودهٔ کېدونکے- (م- عربی)-

قائلول:(قا-ئِ-له-ول)مصدر متعدي- وګورئ قائل- اقرارول- پهٔ چا منل- معتقدول-

قائلېدل:(قا-ئِ-لې-دل)مصدر لازم- منل- تسلیمول- تسلیمېدل-

قائلېدن:(قا-ئِ-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ قائلېدل-

قائلېدنګ:(قا-ئِ-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ قائلېدل-

قائلېدنه:(قا-ئِ-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قائلېدل-

قائلېدونکے:(قا-ئِ-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قائلېدونکي- مؤنث قائلېدونکې- وګورئ قائلېدل-

قائلېدهٔ:(قا-ئِ-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قائلېدل-

قائم:(قا-ئم)اسم- واحد- مذکر- مضبوط- پوخ- نېغ ولاړ- (م- عربی)-

قائم دائم:(قا-ئم-دا-ئم)اسم مرکب- قائم- پهٔ خپل ځائې هم هغه شان- پوخ- پهٔ ځائې ولاړ-

قایه:(قا-یه)اسم- واحد- مؤنث- څرمن- پوټکے- پوټ-

قب:(قب)اسم- واحد- مذکر- کُب- دَ غوښې یا اوبشځې نه پورته وُچته حصه- (م- هندی کُب)-

قبا:(قَ-با)اسم- واحد- مؤنث- لویه چپنه- لویه چُغه- خلکه- خرقه- جمع قباګانې- (م- عربی)-

قباحت:(قَ-با-حت)اسم- نقصان- بدي- عېب- ذلیل کار- (م- عربی)-

قباړی:(قَ-با-ړی)اسم- واحد- مؤنث- کنډی- کدله- دَ مالوچو اندرکه-

قباله:(قَ-با-له)اسم- واحد- مؤنث- وعده لیکل- دَ مکان وغیره لیکلے شوې بیعه نامه- سند- (م- عربی)-

قبائل:(قَ-با-ئل)اسم- جمع- مذکر- دَ قبیلې جمع- عوام- دَ خاندانونو مجموعه- (م- عربی)-

قبح:(قبح)اسم- واحد- مؤنث- بدي- خرابے- نقصان- (م- عربی)-

قبر:(قَ-بر)اسم- واحد- مذکر- ګور- دَ انسان ابدي کور- مرستون- ډوري- کیځ- (م- فارسی)-

قبرډوله:(قَ-بر-ډو-له)اسم- کنده- کډی- شقے- لحد ډوله-

قبرستان:(قَب-رس-تان)اسم- واحد- مذکر- مقبره- ګورستان- مدیره- ادیره-

قبرکښ:(قَ-بَر-کښ)اسم صفت- وګورئ قبرکن-

قبرکن:(قَ-بر-کَن)اسم صفت- ګورکن- هغه څوک چي قبر جوړوي-

ئ= (ځي-رل)، ې=(صې-ره-ول)، ي=(پیا-لیي)، يے=(تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

قبر کنستونکے-

قبض:(قَ-بض)اسم- (۱)بندېدنه- قبضه کېښې راوستنه- (۲)دَ خېټې يوه بيماري-

قبضول:(قب-ض-ول)مصدر متعدي- قبض کول- نيول- ترلاسه کول- دَ ساه لرونکي موجود څخه رزح اخستل-

قبضه:(قب-ضه)اسم- لاس کېښې اخستنه- خېټه اچونه- نيونه- (کول کېدل مصدرونه)-

قبضيات:(قب-ضي-يات)اسم- جمع- وګورئ قبض-

قبضيت:(قب-ضي-يت)اسم- واحد- مذکر- پېچش- قبض- دَ لويو بولو نهٔ کېدنه-

قبضېدل:(قب-ضي-دل)مصدر لازم- قبض کېدل- نيول کېدل- تر لاسه کېدل-

قبل:(قَ-بل)متعلق فعل- لرغون- اول- په شروع کېښې- زرومبے- سابقه- وړاندې- مخکښې- (م- عربي)-

قبلول:(قب-له-ول)مصدر متعدي- قبولول- (۱)منل- منظورول- (۲)اخستل-

قبلون:(قب-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ قبلول-

قبلونکے:(قب-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قبلونکي- مؤنث قبلونکې- وګورئ قبلول-

قبلونګ:(قب-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ قبلول-

قبلونه:(قب-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قبلول-

قبلوهٔ:(قب-له-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قبلول-

قبله:(قب-له)اسم- واحد- مؤنث- کعبه- بيت الله شريف- هغه پاک ځاےَ چې مسلمانان زرته دَ نمونځ په وخت مخ کوي-

قبله نمائي:(قب-له-ن-ما-ئي)اسم- قبله ښودنه- لورے ښودنه-

قبلنيز:(قب-له-نيز)اسم- واحد- مذکر- دَ نمر پرېواتهٔ دَ طرف- قبلنيزه علاقه- قبلې ته منسوب-

قبلېدل:(قب-لې-دل)مصدر لازم- منظورېدل- منل- منلے کېدل-

قبلېدن:(قب-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ قبلېدل-

قبلېدنګ:(قب-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ قبلېدل-

قبلېدنه:(قب-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قبلېدل-

قبلېدونکے:(قب-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قبلېدونکي- مؤنث قبلېدونکې- وګورئ قبلېدل-

قبلېدهٔ:(قب-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قبلېدل-

قبول:(قَ-بول)مصدر اسم- (۱)منته- منظور- (۲)رضا- خوښه- (۳)خوښ- (م- عربي)-

قبيح:(قَ-بيح)اسم صفت- نامناسبه- بدرنګه- خلاف- دَ اخلاقو خلاف- ناوړه- نابوده-

قبے:(قَ-بے)اسم صفت- کبے- ملاتيټے- شاټغے-

قبيل:(قَ-بيل)اسم- واحد- مذکر- قبيله- قوم- خېل- خاندان- اولس- زے-

قبيله:(قَ-بي-له)اسم- واحد- مؤنث- خاندان- دَ ډېرو خاندانو مجموعه-

قبيلوي:(قَ-بي-له-وي)صفت- دَ قبيلې- قبيلې سره متعلق-

قپ:(قپ)اسم- واحد- مؤنث- وازه- بې غاښو (خله)- کړشپه (خله)-

قپا:(قَ-پا)اسم صوت- چړپ چړپ- دَ خوراک په وخت دَ سپي دَ خُلې آواز-

قپان:(قَ-پان)اسم- لويه تله- دړ- (م- فارسي)-

قپان چي:(قَ-پان-چي)اسم صفت- تلونکے- تول کونکے- اُړتي- دړوائي- (م- فارسي)-

قپيا:(قپ-يا/قَ-پيا)اسم- وګورئ کپيا-

قپے:(قَ-پے)اسم صفت- وازه خلهٔ لرونکے- کپے-

قت:(قت)اسم- واحد- مذکر- (۱)تهه- (۲)قطار- جمع قتونه- (۳)دَ يو بل لهٔ پاسه- پهٔ يو بل پسې-

قت:(قُت)اسم- واحد- مذکر- غاړه- قتے- قُتې- بزغے- ږوغل- جمع قُتي-

قتار:(قَ-تار)اسم- واحد- مذکر- قطار- (۱)دَ لسو اوښانو مجموعه- (۲)ځپ- صف- لائن- لړۍ-

قتاره:(قَ-تا-ره)اسم صفت- کچه پوچه- بې هوده-

قتال:(قَ-تال)اسم- واحد- مذکر- جنګ- جګړه- (م- عربي)-

قتره:(قت-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قطره- (۲)دَ غوښې ټکړه- جمع قترې-

قتغ:(قَ-تغ)اسم- واحد- مذکر- ترکاري- سالن- کتغ- نګولے- اينګولے- لاوڼ- نغولے-

قتکانے:(قت-کا-نے)اسم صفت- سخت کانے- دَ شګې او خاورې نه جوړ شوے کانے- کُتکانے-

قتکورے:(قت-کو-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ مزرو نه جوړه شوې جالېداره تيلۍ-

قتل:(قَ-تل)اسم- واحد- مذکر- مړکونه- ساه ويستنه- ختمونه- وژنه- مرګ- (م- عربي)-

قتل ګاه:(قَ-تل-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وژلو ځاےَ دَ قتلولو ځاےَ-

قتلول:(قت-له-ول)مصدر متعدي- وژل- قتل کول- مړول- مړکول-

قتلون:(قت-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ قتلول-

قتلونکے:(قت-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قتلونکي- مؤنث قتلونکې- وګورئ قتلول-

قتلونګ:(قت-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ قتلول-

قتلونه:(قت-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قتلول-

قتلوهٔ:(قت-له-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قتلول-

قتلېدل:(قت-لې-دل)مصدر لازم- قتلول- وژل- دَ بل دَ لاسه مړکېدل-

قتلېدن:(قت-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ قتلېدل-

قتلېدنګ:(قت-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ قتلېدل-

قتلېدنه:(قت-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قتلېدل-

قتلېدونکے:(قت-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قتلېدونکي-

مؤنث قتلېدونکې- وکورئ قتلېدل-

قتلېدهٔ:(قت-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وکورئ قتلېدل-

قتی:(قِ-تی)اسم- واحد- مؤنث- کېپه-

قتیل:(قَ-تیل)اسم صفت مفعول- مړ کړے- قتل کړے- مقتول- وژلے- (م- عربی)-

قتې:(قَ-تې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)پهٔ زنه کښې وړوکې شان کنده- دَ ماشومانو یوه لوبه-

قتې:(قِ-تې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)وکورئ قتے- (۲)ډبلے- ډبے- دَ نسوارو قُتی- (م- ترکی)-

قتے:(قِ-تے)اسم- واحد- مذکر- بال- دَ خرمنې یا مالوچو نه جوړ شوے بال- پنډوس-

قتے:(قُ-تے)اسم- واحد- مذکر- قُت- قُتی- بوغے- پوغل- قُتاړه- جمع قُتی-

قته گـته:(قَ-ته-گـَ-ته)اسم صفت- کته گـته- غته گـته- دَ لاس یا پښې غته گـته- دَ نورو گـتو نه لره پېړه گـته-

قجیر:(قَ-جیر)اسم- واحد- مذکر- کجیر- (۱)گرگس- (۲)غښتلے- کلک پلک- (۲)ښهٔ او کامل سړے- صادق سړے-

قچر:(قَ-چر)اسم- واحد- مذکر- (۱)خچر- (۲)بې شرمه- بې حیا- لوفر-

قچرے:(قچ-رے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم نمده چې دَ زین لاندې اچولے شی-

قچه گـته:(قَ-چه-گـَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړوکې گـته- دَ لاس یا پښې دَ ټولو نه وړوکې گـته-

قچے:(قَ-چے)اسم- واحد- مذکر- جمات- اتفاق-

قحبه:(قح-به)اسم صفت- واحد- مؤنث- رنډی- ورانه (ښځه)- بدکاره- فحاشه-

قحط:(قحط)اسم- واحد- مذکر- ډوکال- دَ غلې کمے- وچ کالی- گرانی- قحطی- ارزانی- اناثی- قات- جمع قحطونه- (م- عربی)-

قحط سالی:(قحط-سا-لی)اسم- واحد- مؤنث- وکورئ ډوکال- دَ قحطی کال- وچ کالے-

قحطی ملخ:(قح-طی-مَ-لخ)اسم- مغد غټ او شین رنگی ملخان چې پهٔ فصل راوالوځی نو قحط راولی- قاتی ملخ-

قحطی:(قح-طی)اسم- واحد- مؤنث- گرانی- خشک سالی- قحطی-

قد:(قد)اسم- واحد- مذکر- دَ بدن ورږدوالے- قامت-

قداندام:(قد-ان-دام)اسم صفت- دَ ورږد اندام خاوند-

قدر:(قَ-در)اسم- واحد- مذکر- (۱)عزت- شان- (۲)قیمت- مقدار- اندازه-

قدرت:(قد-رت)اسم- واحد- مذکر- (۱)احتیار- طاقت- (۲)قوت- (۳)توان- زور-

قدرتی:(قد-ر-تی)اسم- خدائی- فطرتی- اصلی- لهٔ ځایه-

قدردان:(قَ-در-دان)اسم صفت- واحد- مذکر- قدر کونکے- پهٔ قدر پوئ-

قدرمن:(قَ-در-من)اسم صفت- دَ قدر لائق- دَ قدر قابل- قدرمند-

قدرمند:(قَ-در-مند)اسم صفت- وکورئ قدرمن-

قدری:(قد-ری)صفت- قدرمن- قیمتی- دَ قدر قابل- قدرمند-

قدرې:(قد-رې)متعلق فعل- لږ شان- لکوټی- معمولی شان-

قدغن:(قد-غن)اسم- واحد- مذکر- رزکاوټ- پابندی- تاکید- کتغن-

قدم:(قِ-دم)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډېر زیات زوړوالے- دَ وخت او زمانې نه پخواوالے- (۲)زړېدنه- (م- عربی)-

قدم:(قَ-دم)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پښو نښه- (۲)گام- یو قدم پسې بل قدم- (م- عربی)-

قدما:(قُ-دَ-ما)اسم- دَ قدیم جمع- دَ مخکښې زمانې- سابقه- وړاندینی- زاړهٔ-

قدوری:(قُ-دو-ری)اسم- واحد- مذکر- دَ اسلامی فقهې دَ مشهور کتاب نوم-

قدوس:(قُد-دوس)اسم صفت- ډېر پاک- ډېر سپېځلے- دَ الله تعالی یو صفتی نوم-

قد و قامت:(قَ-دو-قا-مت)اسم- ونه- ډره- ډیل ډول- ونه او ځُته- قدقامت- جوړښت-

قدوم:(قُ-دوم)اسم- واحد- مذکر- راتلل- تشریف راوړنه- (م- عربی)-

قدوه:(قد-وه)اسم- واحد- مذکر- (۱)پېشوا- پیر- رهبر- (۲)منتخب- چاڼ شوے- (۳)مثال- نمونه- (م- عربی)-

قدیر:(قَ-دیر)اسم صفت- دَ الله تعالی یو صفتی نوم- طاقتور- دَ طاقت خاوند- بااختیاره- (م- عربی)-

قدیم:(قَ-دیم)صفت- (۱)دَ مخکښې زمانې- دَ وړاندینو وختونو- لرغونے- وړاندینے- وړومبے- قدیمی-

قدیمی:(قَ-دی-مې)اسم صفت- زوړوالے- دَ زړې زمانې- دَ مخکښې وختونو- قدیم-

قرابت:(قَ-را-بت)اسم- واحد- مذکر- نزدېکت- رشته داری- یو بل سره خپلولی- (م- عربی)-

قرار:(قَ-رار)اسم- واحد- مذکر- (۱)اطمینان- سکون- ارام- (۲)مطمئن- قلار- غلے- چپ-

قرارداد:(قَ-رار-داد)اسم- واحد- مذکر- وعده- فیصله- تړون-

قرارول:(قَ-را-ر-ول)مصدر متعدی- (۱)قلارول- آرامول- تیکاوول- موسا کول- (۲)منع کول- منزل- غلے کول- خاموشه کول-

قرارون:(قَ-را-ر-ون)حاصل مصدر- وکورئ قرارول-

قرارونګ:(قَ-را-ر-ونګ)حاصل مصدر- وکورئ قرارول-

قرارونکے:(قَ-را-ر-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قرارونکی- مؤنث قرارونکې- وکورئ قرارول-

قرارونه:(قَ-را-ر-وڼه)حاصل مصدر- وکورئ قرارول-

قراروهٔ:(قَ-را-ر-وهٔ)حاصل مصدر- وکورئ قرارول-

ئ (خی-رل)، ۍ (شې-ره-ول)، ې (پیا-لې)، ـیِ (تن-دې) تفصیل دَ پاره وکورئ تشریحات صفحه ۱

قراره شومه:(ق-را-ره-شو-مه)اسم صفت- قلاره شومه- شومه دم- هغه وخت چې شپه پخه شي-

قراري:(ق-رامري)اسم- واحد- مونث- (۱)ارامي- قلاري- (۲)چُپتيا- خاموشي- (۳)خېرخيريت-

قرارېدل:(ق-را-رې-دل)مصدر لازم- موسا کېدل- ارامېدل- قلارېدل- ټيکاوېدل- غلے کېدل- چپ کېدل-

قرارېدن:(ق-را-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ قرارېدل-

قرارېدنګ:(ق-را-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ قرارېدل-

قرارېدنه:(ق-را-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قرارېدل-

قرارېدونکے:(ق-را-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قرارېدونکي- مؤنث قرارېدونکې- وګورئ قرارېدل-

قرارے:(ق-را-رے)اسم- وګورئ قلارے-

قراول:(ق-را-ول)اسم- مذکر- د فوځ هغه دسته چې د نګرانۍ په خاطر د لوئ فوځ نه مخکښې مخکښې روانه وي- سرزاړ- سروانړے-

قران:(ق-ران)اسم- واحد- مذکر- د قران اصل معنٰی نزدې کېدنه دي- دلته ترې مطلب د نحس ستورو يوځاۍ کېدل او په نتيجه کښې مصيبت دے-

قرآن:(قر-آن)اسم- واحد- مذکر- د الله پاک آخری کتاب- د مسلمانانو مقدس کتاب- کلام الله- فرقان-

قرآن پاڼه:(قر-آن-پا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- په ګلونو او باغونو کښې الوتونکې د مختلفو رنګونو يوه بنائسته حشره- د ليپي ډپټېره (LEPIDOPTERA) عام نوم چې د پتنګ نه ئې فرق د انټينا په وجه کيږي- تارو- تاروزے- تارو غاړی- تاروکی- تاروکے- کوکی- کمبلۍ- پوتلکۍ- کوکړۍ- پلپتۍ- پوتلۍ- بلبله- ګلي نا- بابړۍ- بخملۍ- بالبکۍ- پلپوتۍ- تتلۍ- تولکه- ببوزے- لولۍ- پرپرکے- بابه- بابکۍ- پولپولکۍ- پتنګ-

قرات:(ق-رات/قر-ات)اسم- لستنه- وئيله- نست-

قرائن:(ق-را-ئن)اسم- جمع- د قرينه جمع- وګورئ قرينه-

قربان:(قر-بان)اسم- واحد- مذکر- خار- نثار- فدا- درووے- جارے- (م- عربی)-

قربانول:(قر-با-ن-ول)مصدر متعدی- فدا کول- ځان قربانول- نثارول- جارول- د خدائ په لاره کښې صدقه ورکول- درووَل-

قرباني:(قر-با-ني)اسم- واحد- مؤنث- د خدائ په لار کښې څاروے حلالونه- حلاله- ذبح کونه- جارے- اخترے- د قربانۍ عمل- ايثار-

قربانېدل:(قر-با-نې-دل)مصدر لازم- نثارېدل- فدا کېدل- د خدائ په لار کښې صدقه کېدل- درووېدل-

قربانېدن:(قر-با-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ قربانېدل-

قربانېدنګ:(قر-با-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ قربانېدل-

قربانېدنه:(قر-با-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قربانېدل-

قربانېدونکے:(قر-با-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قربانېدونکي- مؤنث قربانېدونکې- وګورئ قربانېدل-

قربانېدۀ:(قر-با-نې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ قربانېدل-

قربت:(قُر-بت)اسم- واحد- مذکر- نژدېکت- نزدې والے- قرب-

قرت:(ق-رت/قرت)اسم- واحد- مذکر- وچ پنير- قرزت- وچې کړې شوملې-

قرت کاڼے:(قرت-کا-ڼے)اسم- واحد- مذکر- د چونې کاڼے- کنکر- ختيني شان-

قرص:(قرص)اسم- واحد- مذکر- ګول چکی- ټيکلی- ټيکله- ټکی- ګولی- چکی- کلچه- کولچه- چاکلېټ- (م- عربی)-

قرض:(قرض)اسم- واحد- مذکر- بدله- دېن- موس- پور- وام-

قرض دار:(قرض-دار)اسم صفت- مقروض- چې قرض ورپورې وی-

قرضه:(قر-ضه)اسم- واحد- مؤنث- قرض- پور-

قرط:(قرط)اسم- واحد- مؤنث- والی- په غوږونو کښې د اچولو يو کالے- تختئ-

قرطاس:(قر-طاس)اسم- واحد- مذکر- کاغذ- ليک پاڼه-

قرعه:(قر-عه)اسم- واحد- مذکر- پاس- فسک- پچه- خسنے-

قرغ:(قرغ)اسم- ناغه- ضبطی- ببوړ- کوره- بند- شپول- وګورئ قرق- (م- عربی)-

قرغ کول:(قرغ-ک-ول)مصدر- قرق کول- ناغه کول- ضبط کول- سرکاری کول-

قرغندل:(قر-غن-دل)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم بوټے- کورغندل-

قرغبچن:(قر-غې-چن)اسم صفت- د ساړۀ نه رپېدونکے- قرقبچن-

قرق:(قرق)اسم- قرغ- (۱)ضبطونه- منع کونه- اړدرونه- (۲)سخت رکاوټ- (م- عربی)-

قرقره:(قر-ق-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طُره- (۲)د مستئ په وخت د غوئ زغېره لکی نيغونه- (۳)د مارغه د سر د وېښتو خونډے-

قرقرى:(قر-ق-ری)اسم صوت- قرقر- قرخوړ- د اُس زغېره د ګېډې آواز-

قرق کېدل:(قرق-کې-دل)فعل مصدر- قرغ کېدل- ضبطېدل- سرکاری کېدل- ناغه کېدل-

قرقبچن:(قر-قې-چن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ قرغبچن-

قرمزی:(قر-م-زی)اسم صفت- سور رنګ-

قرمساق:(قر-م-ساق)اسم صفت- بروا- دووس- دله- چړوس- (م- ترکی)-

قرن:(ق-رن/قرن)اسم- صدی- پښت- يوه اندازه چې سل کاله فرض کړے شوې ده-

قرنا:(قر-نا)اسم- کول- اصل توری "خرنا" دے- لويه شپېلی- بګل- بيګل- توری- (م- فارسی)-

قرناړے:(قر-نا-ړے)اسم- د بنکر بيګل- ناقوس- توری- سرنا- سرنا-

قر نيکۀ:(قر-نی-کۀ)اسم صفت- غور نيکۀ-

قرزل:(ق-رزل)اسم- واحد- مذکر- ښکاری- صياد-

قرولی:(ق-رو-لی)اسم- واحد- مؤنث- لویه چاړهٔ- دٔ ښکاریانو چاقو- (م- هندی)-

قره قل:(ق-ره-قل)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم ټوپی-

قریب:(ق-ریب)اسم- (۱)نژدې- خوا کښې- متصل- (۲)رشته دار- همسایه- (م- عربی)-

قریباً:(ق-ری-بن)اسم- واحد- مذکر- اندازتاً- نژدې نژدې-

قریبی:(ق-ری-بی)اسم صفت- نژدې- ډېر نژدې- رشته دار-

قریحه:(ق-ری-حه)اسم- واحد- مذکر- (۱)طبعیت- فطرت- (۲- صفت)خالص- بې عیبه- (م- عربی)-

قریض:(ق-ریض)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سندره- شعر- (۲)شخوند- (م- فارسی)-

قرین:(ق-رین)اسم صفت- مذکر- (۱)یار- دوست- ملګرے- همنشین- (۲)نژدې- خوا کښې- جخت- سره- یو ځاې- (۳)نښه- علامه- غندې- (م- عربی)-

قرینه:(ق-ری-نه)اسم- (۱)اثر- علامت- نښه- (۲)وجه- سبب- (۳)یو شان-

قریه:(قر-یه)اسم- واحد- مذکر- کور- کلے- موضع- (م- عربی)-

قریش:(ق-ریش)اسم- واحد- مذکر- د عربو یوه معززه قبیله- (م- عربی)-

قړار:(قړ-ړار)اسم صوت- قړقړ- کړېړ- کړار- پهٔ خېټه کښې د بدهضمۍ له کبله د قړقړ آواز راوتنه- قړقور-

قړتن:(قړهٔ-تن)اسم صفت- ټتن- ترټن- هغه څوک چې ډېرې قړتې او عبث چټیاټ غږوی- فضول خبرې کونکے- قړتو-

قړتو:(قړهٔ-تو)اسم صفت- کړتېر- خبر لوغ- هغه څوک چې هر وخت قړتیږی- وګورئ قړتن-

قړقور:(قړ-قور)اسم صوت- وګورئ قړار-

قړقېچن:(قړ-قې-چن)اسم صفت- کړکېچن- مرغېچن- مرڅېن- کنځلک-

قړمېزن:(قړ-مې-زن)اسم صفت- (۱)هغه څوک چې پوزه یې هر وخت د کرینک نه ډکه وی- (۲)بې سلیقې سړے-

قړکېژن:(قړ-کې-ژن)اسم صفت- وګورئ قړقېچن-

قړم:(ق-ړم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کړم- جمع قړمان-

قړمېزی:(قړ-مې-زی)اسم- د پوزې ګندګی- کړنګ- کړینګ-

قړینګا:(قړینګ-ګا)اسم صفت- ړوند- بینګا- کاڼے-

قز:(قز)اسم- وریښم- کچه وریښم چې رنګ شوی نهٔ وی-

قزاز:(قز-زاز)اسم- (۱)وریښم خرڅونکے- وریښم ګر- (۲)اخوندیګر-

قزاق:(قز-زاق)اسم صفت- (۱)لاره وهونکے- (۲)د یو قوم نوم-

قزل:(قزل)اسم صفت- واحد- مذکر- سور- (م- ترکی)-

قزلباش:(ق-زل-باش)اسم صفت- (۱)د سور سر خاوند- (۲)د مغلو سپاپانو هغه ګروپ چې سرې ټوپۍ به ئې په سرولې- (م- ترکی)-

قسب:(قسب)اسم- (۱)د سور رنګ یوه وریښمی کپړه- (۲)وزګې پکړی-

(۳)څپوټکے-

قسب:(ق-سب)اسم- واحد- مذکر- کسب- کار روزګار- دنده- وظیفه- شغل- پیوټې- جمع قسبونه-

قسبه:(قس-به)اسم- (۱)دنده- پېشه- کسب- قسب- (۲)څهٔ پېشه کونکے- کسب کونکے- کسبه-

قست:(قست)اسم- واحد- مذکر- قصد- اراده- نیت- د یو کار کولو اراده-

قسر:(قسر)اسم- واحد- مذکر- بېګار- جبراً کار اخستل- بغېر پېسو کار (مزدوری) کول- (م- عربی)-

قسط:(قسط)اسم- واحد- مذکر- (۱)انصاف- نیاز- (۲)حصه- برخه- (۳)محصول- ټېکس- (م- عربی)-

قسط:(قسط)اسم- واحد- مذکر- د قرض پهٔ پېسو کښې مقرر شوے میعاد- (م- عربی)-

قسم:(ق-سم)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوګند- ګو- حلف- لوړه- لو- (۲)ذات- (م- عربی)-

قسم:(ق-سم)متعلق فعل- شان- څېر- توګه- راز- نوع- ډول- رنګ- هسې-

قسمت:(قس-مت)اسم- واحد- مذکر- (۱)نصیب- د نصیب لیکلے- تقسیم- برخه- وېشونه- (۲)د صوبې یوه برخه- (م- عربی)-

قسمت کرونی:(قس-مت-کرو-نی)اسم- جمع- مذکر- برخه ورکونکی- وېشونکی- وېش کونکی-

قسمتی:(قس-مه-تي)اسم صفت- خوش قسمته- بختور-

قسم راقسم:(ق-سم-را-ق-سم)دوارو خواو نه د یو بل قسم کول-

قسم قسم:(ق-سم-ق-سم)متعلق فعل- رنګا رنګ- ډول ډول- ناشنا ناشنا-

قسم مات:(ق-سم-مات)اسم صفت- بې وعدې- چې قسم مات کړی- دروغژن-

قسمی:(ق-س-مي)اسم صفت- سوګندی- قسم یا سوګند ورکړے شوے-

قسیم:(ق-سیم)اسم صفت- (۱)ښانسته او ښکلے- (۲)تقسیمونکے- (م- عربی)-

قشر:(قشر)اسم- واحد- مذکر- د مېوې پوستکے- پوټکے- پوست- (م- عربی)-

قشط:(قشط)اسم- واحد- مذکر- قسط- کشت- چک چک- جمع قشطونه-

قشقاش:(قش-قاش)اسم- قاشقاش- خشخاش- قاشقاش-

قشلاق:(قش-لاق)اسم- واحد- مذکر- (۱)د یخنی د تېرولو ځاې- (۲)د کلي وسېدونکے- (م- فارسی)-

قشنګ:(ق-شنګ)اسم صفت- ښانسته- ښکلے- (م- فارسی)-

قشون:(ق-شون ق-شن)اسم- (۱)پیاده وې- کېمپ- (۲)لښکر- (۳)د فوځ یوه حصه- (م- ترکی)-

قصاب:(ق-صاب)اسم صفت- غوښه خرڅونکے- حلاله کونکے- (م- عربی)-

قصاب خانه:(ق-صاب-خا-نه)اسم- چرته چې قصابان حلالې کوی-

قصابی:(ق-صا-بی)اسم- (۱)غوښه خرڅونه- (۲)د غوښې خرڅولو دکان-

قصاص:(قص-صاص)اسم- واحد- مذکر- خون بهاء- د مرګ پهٔ بدله کښې

ی: (ځی-ږل)- ی:(ضي-ره-ول)- ی:(پیما-لی)- م:(قن-د-ی) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

مرګ- (م- عربی)-

قصائد:(قَ-صا-ئِد)اسم- د قصيدې جمع- هغه نظم چې پکښې د چا تعريف شوې وي- (م- عربی)-

قصب:(قصب)اسم- نل چې په مينځ کښې خالی وي- دروے- درومه- نل-

قصبه:(قَص-به)اسم- واحد- مؤنث- وړوکے ښار- لوئ کلے- (م- عربی)-

قصد:(قَصد)اسم- واحد- مذکر- کوشش- توجه- څهٔ کار کولو د پاره تيارېدنه- (م- عربی)-

قصداً:(قَص-دَن)متعلق فعل- ارادې سره- په نيت- په اراده-

قصدمن:(قصد-من)اسم صفت- (۱)اراده کونکے- (۲)د بدخواهئ اراده کونکے- مخالف-

قصدی:(قَص-دی)اسم صفت- ضدی- کست من- قصدمن-

قصر:(قصر/قَ-صر)اسم- واحد- مذکر- محل- ماڼۍ- (م- عربی)-

قصر:(قصر)اسم- کمے- پرېکون- نقصان- په سفر کښې د مونځ لنډونه- (م- عربی)-

قصص:(قَ-صَص)اسم- د قصې جمع- قصې- قيصې- (م- عربی)-

قصور:(قُ-صُور)اسم- واحد- مذکر- (۱)جرم- غلطی- (۲)ګناه- خطا- تقصير- خطائی- (۲)د قصر نمبر۱ جمع(م- عربی)-

قصورمن:(قُ-صُور-من)اسم صفت- ګناهګار- قصوروار- هغه څوک چې څهٔ قصور يا خطا ترې شوې وی-

قصوروار:(قُ-صُور-وار)اسم صفت- وګورئ قصورمن-

قصه:(قِ-صه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نقل- قيصې- سرګزشت- (۲)قضيه- جګړه- (م- عربی)-

قصيده:(قَ-صی-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د پنډۍ د هډوکی مغز- (۲)د نظم يو قسم چې پکښې د چا تعريف يا خرابوالے بيان شوے وی- (م- عربی)-

قصير:(قَ-صير)اسم- واحد- مذکر- مختصر- لنډ- لنډ قدے- مندرے- ټيټکے- (م- عربی)-

قضا:(قَ-ضا)اسم- (۱)حکم- (۲)د مخلوق په باره کښې د خدائ حکم- ويه- وئے- (۲)مرګ- (۴)پاتې- ناغه- (۵)د خدائ کړهٔ- ازل ليک- (م- عربی)-

قضائی:(قَ-ضا-ئی)اسم- واحد- مذکر- (۱)اتفاقی- (۲)د مرګ راتلنه- (۳)د قضا- د قضا سره متعلق- (م- عربی)-

قضيب:(قَ-ضيب)اسم- واحد- مؤنث- نرئ وُړه پانه- لښته- (۲)يو قسم توره- نرئ توره- (م- عربی)-

قضيه:(قَ-ضی-يه)اسم- واحد- مؤنث- جګړه- ټنټه- فساد- معامله- واقعه- پېښه-

قط:(قط)اسم- (۱)د قلم څوکه پرېکونه- کټ کونه- (۲)قلم کټ- (۲)هېڅ- هېڅکله-

قطار:(قَ-طار)اسم- واحد- مذکر- (۱)لائن- لېن- صف- ځپ- ځېره- (۲)وضع- څېر- (م- عربی)-

قطارې:(قَ-طا-رې)اسم- کتاری- (۱)بې ځايه تکرار- (۲)قصې- لانجې-

قطب:(قَ-طب/قُطب)اسم- واحد- مذکر- (۱)د چکی محور- (۲- صفت)مشر- بزرګ- (۳)په صوفيائ کرامو کښې يوه مرتبه- (۴)د شمال طرف- (۵)قطبی ستورے- (۶- صفت)شهزاده- (۷)د علم هئيت يوه اصطلاح-

قطب نما:(قُ-طب-نُ-ما)اسم- د سمندر د اړخونو معلومولو آله- لوربنود- کمپاس-

قطر:(قُ-طر/قُطر)اسم- غاړه- حاشيه- په علم هندسه کښې هغه لکيره چې د دائرې په مينځ کښې تيرېږی-

قطره:(قَط-ره)اسم- (۱)څاڅکے- ذره- (۲)د غوښې د ږوږی قطره- (م- عربی)-

قطع:(قه-طع/قَطع)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پرېکونه- کټ کونه- ختمونه- (۲)ببخی- بالکل- بې شک- (م- عربی)-

قطعاً:(قط-عن)متعلق فعل- هېڅکله نه- بالکل نه-

قطعی:(قَط-عی)صفت- (۱)بالکل- (۲)قتی- بيخی- (۳)آخری- فېصله کن- ځکټ- (م- عربی)-

قطعه:(قِ-طه/قَط-عه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټکړه- حصه- (۲)د نظم يو قسم-

قطغن:(قط-غن)اسم- وګورئ کتغن- وسته- کوره- بډن- (م- فارسی)-

قطمير:(قط-مير)اسم- واحد- مذکر- (۱)د کجورې (خرما) نرئ جلی- (۲)د اصحاب کهف د سپی نوم- (م- عربی)-

قطن:(قُ-طن/قُطن)اسم- پنبه- کربسکه- مالوچ- هغه ځائ چې کوم ځائ پنبه کيری- پنبه کونکې- پنبه کره- (م- عربی)-

قطی:(قُ-طی)اسم- (۱)ډبی- ډبه- ډبے- (۲)وړوکے صندوق- (۲)سرپوښه ټوکرئ چې پاړوګان پکښې ماران ګرځوی- (م- ترکی)-

قطيفه:(ق-طی-فه)اسم- واحد- مؤنث- توليه- (م- عربی)-

قعده:(قع-ده)اسم- واحد- مؤنث- ناسته- بېټک- نشست- (م- عربی)-

قعر:(قعر)اسم- مذکر- ژورزوالے- غرق ډوغل- تل- (م- عربی)-

قفا:(قَ-فا)اسم- (۱)شټ- مرئ- ارمېږ- (۲)شا- شا ته- مرکنډئ- کوټک- (م- عربی)-

قفار:(قف-فار)اسم- بغېر اينګولی روټی- سپوره ډوډی- وچه ډوډی- (م- عربی)-

قفار:(قف-فار)اسم- واحد- مؤنث- بغېر واښهٔ او اُبو صحرا- ډاګونه- (م- عربی)-

قفر:(قفر)اسم- وچ بيابان- ډاګ- (م- عربی)-

قفرتات:(قفر-تات)اسم- واحد- مذکر- د چرګو يو قسم چې تور رنګ لری-

قفس:(قَ-فس)اسم- واحد- مذکر- پنجره- پنجرے- (م- عربی)-

قفل:(ق-فل/قُفل)اسم- واحد- مذکر- قُلپ- جرنده- تاله- کولپ- جندره- چرک- چوړک- (م- عربی)-

قق قق:(قق-قق)اسم صوت- قرقوړ- د اس د خبتې هغه آواز چې د تېز تګ يا درد په وجه کيری- قرقری-

ققنس:(قُق-نُس)اسم- واحد- مذکر- يو روايتي مارغهٔ چې پهٔ حقله ئې وئيلے شي چې هغه هر قسم راګ يا پهٔ وزن اواز وېستے شي او چې بوډا شي نو پهٔ اور كښې كښينى او ځان وسوزوى او ايره شي دغه ايره د باران د څاڅكي پرېوتو سره اګې شي او د اګې نه بل ققنس پېدا شي- د موسيقى ماهرينو د دهٔ اواز نه سُر وېستلے دے- (م- يونانى)-

ققنوس:(قق-نوس)اسم- وګورئ ققنس- عنقائى- همائى-

قلا:(قَ-لا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قلعه- کوټ- (۲)برج-

قلاب:(قَل-لاب)اسم- حلقه- وګورئ قلابه- (م- عربى)-

قلابه:(قَ-لا-به)اسم- د كبانو نيولو مُک- كنډه- كړدى- كړى- حلقه- نرګوښه- نګوښ- چنګ- (م- عربى)-

قلاچ:(قَ-لاچ)اسم صفت- (۱)د دوو لاسونو تر منځه اوږدوالے- وازه لېچه- (۲)منحوس- بدبخته- قلاش- (۳)شېطان- مكار- (۴)غريب- بې وسه- (م- تركى)-

قلاده:(قَ-لا-ده)اسم- واحد- مؤنث- د سپى وغېره د څټ پټې- غړوندے- (م- عربى)-

قلار:(قَ-لار)اسم صفت- ارام سره- مطمئن- چپ- خاموش- (۲)هغه ماشوم چې ورانکارے نهٔ زى-

قلارول:(قَ-لا-رَ-وَل)مصدر متعدى- (۱)د وژلو او مړکولو استعاره- (۲)چپ كول- آراموِل-

قلارون:(قَ-لا-رَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ قلارول-

قلارونکے:(قَ-لا-رَ-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قلارونکى- مؤنث قلارونکې- وګورئ قلارول-

قلارونګ:(قَ-لا-رَ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ قلارول-

قلارونه:(قَ-لا-رَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قلارول-

قلاروهٔ:(قَ-لا-رَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قلارول-

قلاره شومه:(قَ-لا-ره-شو-مه)اسم مرکب- شومه دم- نيمه شپه- چې شپه ښهٔ پخه شي-

قلاره قلاره:(قَ-لا-ره-قَ-لا-ره)اسم مرکب- ورو ورو- پهٔ قلار قلار- پهٔ آرام- پهٔ مزه مزه-

قلاره قلارى:(قَ-لا-ره-قَ-لا-رى)اسم- قلارے- قلارى- آرامه آرامى-

قلارېدل:(قَ-لا-رې-دل)مصدر لازم- آرامېدل- چپ کېدل- خاموشه کېدل-

قلارېدن:(قَ-لا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ قلارېدل-

قلارېدنګ:(قَ-لا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ قلارېدل-

قلارېدنه:(قَ-لا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قلارېدل-

قلارېدونکے:(قَ-لا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قلارېدونکى- مؤنث قلارېدونکې- وګورئ قلارېدل-

قلارېدهٔ:(قَ-لا-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قلارېدل-

قلارے:(قَ-لا-رے)اسم- قرارے- قرار- قلاره- قلارى- آرامى- دمه- وقفه-

قلاش:(قَ-لاش)اسم صفت- وګورئ قلاچ- (۱)مفلس- فقير- (۲)لوچه- بدمعاش- (م- تركى)-

قلاع:(قَ-لاع)اسم- د قلعه جمع- ډېرې قلعې- (م- عربى)-

قلاغ:(قَ-لاغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)كارغهٔ- (۲)د كونترو يو قسم- (۳)پېښې- (م- فارسى)-

قلاوه:(قَ-لا-وه)اسم- (۱)رنګينه بګه يا پرتوغاښ- (۲)خوړ يا توے چې د بارانهٔ پهٔ اُبو آباد وى- لويه نالى يا وله-

قلاوې:(قَ-لا-وې)اسم- جمع- مؤنث- قلاګانې-

قلائد:(قَ-لا-ئد)اسم- د قلاده جمع- د څټ پټې- غړوندى- (م- عربى)-

قلب:(قَلب)اسم- واحد- مذکر- (۱)زړهٔ- ضمير- (۲)عقل- (۳)الټه- اپوټه- (۴)نسكور- (۵)كوټه- قلپ- كلپ- (م- عربى)-

قلبه:(قُل-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د غوايانو جوړى- (۲)ايوې- يوې- (۳)برغ- جوړه-

قلبه ګر:(قُل-به-ګر)اسم- قلبه كوُنكے- زميندار- دهقان-

قلپ:(قَلپ)اسم صفت- واحد- مذکر- كوټه- ناخالص- غېر خالص-

قلپ:(قُلپ)اسم- واحد- مذکر- تالا- كولپ- كُنجى- چابى-

قلپوالى:(قلپ-وا-لى)اسم- ګډون-

قلپه:(قَل-په)اسم صفت- قلپ- كوټه- چې نهٔ چليږى-

قلپے:(قَل-پے)اسم صفت- كوټه- خراب-

قلت:(قَل-لت)متعلق فعل- كمى- نهٔ ملاوېدنه- (م- عربى)-

قلتبان:(قَل-ته-بان)اسم صفت- بېروا- بې غېرته- دووس-

قلتبانى:(قَل-تَ-با-نى)اسم صفت- دووسى- بې غېرتى- د ډمو چلولو كار- بېرواتوب-

قلزم:(قُل-زم)اسم- واحد- مذکر- سمندر- بحر- (م- عربى)-

قلعه:(قَل-عه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قلا- كوټ- (۲)كور- داسې لوئ كور چې څلور برجونه پرې جوړ زى-

قلف:(قُلف)اسم- واحد- مذکر- (۱)قلپ- قفل- تالا- (۲- صفت)بند- تالا شوے-

قلق:(قلق)اسم- بې آرامى- اضطراب- (م- عربى)-

قلقل:(قُل-قُل)اسم صوت- د صراحى نه د شرابو اچولو آواز- د اُبو تويېدلو آواز-

قلم:(قَ-لَم)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ليكلو آله- (۲)پهٔ يو بوټى كښې د بل بوټى لخته لګونه-

قلماق:(قل-ماق)اسم صفت- (۱)كله ماغ- د تركو يوه قبيله- (۲)ظالم-

قلماقنه:(قل-ما-قهٔ-نه)صفت- مؤنث- د قلماق قبيلې ښځه چې د مغلو باچانو پهٔ ماڼو كښې به ئې څوكيدارى كوله-

قلمبند:(قَ-لم-بَند)صفت- ليک- ليكلے شوے-

قلمدان:(قَ-لَم-دان)اسم- (۱)د قلم كېښودو لوښے- (۲)دفتر- محكمه-

ئ (ځي-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

قلمه:(قل-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خېټې دننه نظام کښې يوه وړُوه او تاڼ راتاڼ نالی-

قلمي:(قه-له-مي)صفت- (۱)قلم ته منسوب- (۲)پېوندي- (۳)پهٔ قلم ليکل شوے- (۴)هغه بوټے چې دَ قلمه دَ حالت څخه ئې وده کړې وي-

قلمي کول:(قَ-له-مي-کَ-وَل)مصدر- ليکل- تحرير کول-

قلنج:(قُ-لنج)اسم- واحد- مؤنث- دَ خېټې دَ دردِ يوه بيماري- قولنج-

قلندر:(قَ-لن-دَر)اسم صفت- (۱)ملنګ- مال او دولت نه بې پروا- (۲)دَ پښتو ژبې يو مشهور شاعر چې دَ آفريدو قبيلې سره ئې تعلق لرلو-

قلنګ:(قَ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)محصول- ماليه- ټېکس- (۲)ماحب-

قلنګي:(قُ-لَنګ-ګي)اسم صفت- اصيل چرګ- دَ جنګ چرګ-

قلوب:(قُ-لوب)اسم- دَ قلب جمع- زړونه- ډېر زړونه- (م- عربي)-

قلي:(قُ-لي)اسم صفت- پانډي- مزدور-

قلئ کر:(قَ-لئ-ګر)اسم صفت- هغه سړے چې پهٔ لوښو کښې دَ قلعي ټانکې لګوي-

قليل:(قَ-ليل)اسم- واحد- مذکر- کم- لږ- (م- عربي)-

قليچ:(قَ-ليچ)اسم- توره-

ق-م:(قاف-ميم)دَ قبل الميلاد مخفف- دَ حضرت عيسٰی عليه السلام دَ پېدائش نه وړاندې-

قمار:(قِ-مار)اسم- دَ کټې بائيلات لوبه- جواري-

قمارباز:(قِ-مار-باز)اسم صفت- جوارګر- جواري کونکے- (م- عربي)-

قماش:(قِ-ماش)اسم- (۱)کپړه- رخت- ريښمي کپړه- (۲)طرز- (۳)اسباب- (م- عربي)-

قمچي:(قَم-چي)اسم- واحد- مؤنث- تازيانه- متروکه- دره- کروړه-

قمچين:(قم-چين)اسم- وګورئ قمچي-

قمچينه:(قم-چي-نه)اسم- واحد- مؤنث- شلاخه-

قمچي:(قم-چي)اسم- قمچين-

قمر:(قَ-مر)اسم- واحد- مؤنث- سپوږمي- (م- عربي)-

قمري:(قَ-مَ-ري)اسم- قمر سره منسوب- قمري کال- (م- عربي)-

قمري:(قُم-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوړکوړي- کوکوشتکه- دَ کوکوشتو پهٔ شان يوه مرغی- خمري- کوتره- دَ کونترې يو ذات- قمري- (م- عربي)-

قمري:(قُم-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ قمري-

قمطرير:(قم-ط-رير)اسم صفت- غصه ناک- دَ غصې نه ډک- پهٔ پوزه مچ نهٔ پرېښودونکے-

قمل:(قُ-مل)اسم- واحد- مؤنث- سپږه-

قميص:(قَ-ميص)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ قرآن شريف کڅوړه- دَ قران شريف جلد چې دَ ټوکې نه جوړولے کېږي- (۲)خت- کميس- کرته- دَ پوشاک يوه حصه-

قنات:(قَ-نات)اسم- دَ خېمې نه ګېر چاپېره لګېدلې پرده-

قنات:(قَ-نات)اسم- حلوه- مېټهائي- شېريني- خواږهٔ خواږه څيزونه- جمع قناتونه-

قنات:(قَ-نات)اسم- واحد- مذکر- کارېز- پهٔ زمکه کښې دننه نهر- (م- عربي)-

قناد:(قَن-ناد)اسم صفت- قند جوړونکے- قند خرڅونکے- مېټهائي جوړونکے- (م- عربي)-

قناعت:(قَ-نا-عت)اسم- واحد- مذکر- صبر پهٔ لږ څيز صبرېدنه- (م- عربي)-

قناوېز:(قَ-نا-وېز)اسم- واحد- مؤنث- کناوېز- يو قسم ريښمي کپړه-

قنج:(قَنج)اسم صفت- آواره- بې موده-

قنج:(قنج)اسم- ناز و ادا- غنج- مکر و فرېب- جمع قنجونه-

قنجوغه:(قن-جو-غه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اَس پنډوکے-

قنجي:(قُن-جي)اسم- واحد- مؤنث- کُنجي- چابي-

قند:(قند)اسم- مصري- نبات- شکر- چيني- (م- فارسي)-

قنداني:(قند-دا-ني)اسم- واحد- مذکر- چيني دان- قند لوښے- (م- فارسي)-

قندسياه:(قن-د-سي-ياه)اسم- ګوړه-

قند مکرر:(قَن-د-م-کر-رر)اسم صفت- سرې شونډې- دَ معشوق شونډو ته کنايه ده-

قنديل:(قَن-ديل)اسم- واحد- مذکر- پانوس- فانوس-

قنوت:(قُ-نوت)اسم- منته- تسليمونه-

قنوط:(قَ-نوط)اسم- نااُمېده کېدنه- بې اُسرې کېدنه-

قو:(قو)اسم صوت- دَ وړو ماشومانو دَ ويښولو لهٔ پاره دَ مينې نه دَ هغوئ غوږونو کښې "قو" کونه-

قوا:(قُ-وا)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ قوت جمع- طاقتونه- (۲- مؤنث)دَ پيو نه جوړه شوې شيريني-

قوات:(قِ-وات)اسم- واحد- مذکر- قويد- قويت- قواعد- پرېټ- ورزش- پي ټي-

قواره:(قَ-وا-ره)اسم- واحد- مذکر- خد و خال- شکل و شباهت- (م- عربي)-

قواعد(قَ-وا-عد)اسم- دَ قاعدې جمع- (۱)طريقه- اُصول- دستور- (۲)مېدان- (م- عربي)-

قوال:(قَو-وال/قَ-وال)اسم صفت- (۱)لوئ ژبے- کړتن- (۲)طبلې وغېره سره سندرې ويونکے- (م- عربي)-

قواله:(قو-وا-له)اسم- وګورئ قباله-

قوالي:(قُو-وا-لي/قَ-وا-لي)اسم- مؤنث- طبلې وغېره سره سندره وئيله-

قوام:(قَ-وام)اسم- مذکر- چاشني- دَ چاشني يا قوام نرے تا چې پهٔ څڅولو راپرېږدي-

قوام:(قِ-وام)اسم- (۱)عدل- انصاف- (۲)رښتيا- (۳)طبعيت- اصل-

قواميس:(قَ-وا-ميس)اسم- دَ قاموس جمع- (۱)زُور سېند- (۲)دَ لُغاتو

"زېر"(ځ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(زَ-ړه)، "ۀ"(ډو-بې-دهٔ)

کتابونه- (م- عربی)-

قوانين:(ق-وا-نين)اسم- د قانون جمع- وګورئ قانون-

قوب:(قوب)اسم- کُب- قُب- جمع قوبونه-

قوبے:(قو-بے)اسم صفت- بوږغ- قُبے- کُبے-

قوبے کول:(قو-بے-ک-ول)مصدر- بوږغول- قبے کول-

قوبے کېدل:(قو-بے-کې-دل)مصدر لازم- بوږغېدل- قُبے کېدل-

قوت:(قو-وت)اسم- مذکر- زور- طاقت- قدرت- جمع قوتونه-

قوت:(قوت)اسم- مذکر- خوراک- د خوراک دومره مقدار چې د ژوند تېرولو د پاره کافي وي-

قوتناک:(قو-وت-ناک)اسم صفت- قوي- تکړه- زورور- ځيګرور- طاقتور-

قوچ:(قوچ)اسم صفت- (۱)ګډ- (۲)جنګيالے ګډ- (م- فارسي)-

قوده:(قو-ده)اسم- د واښهٔ دومره مقدار چې پهٔ موټي کښې راځي- جمع قودې-

قورچي:(قور-چي)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوهار- لووار- (۲)محافظ- د وسلې ځاۍ-

قورمه:(قور-مه)اسم- (۱)د غوښې او دالو پخکړے چې عام طور سره په ښادی وغېره کښې د وريژو سره خوړلے شي- (۲)د آلوګانو، باټينګرو او پياز مسالې ټينګه شان ښوروا-

قوس:(قوس)اسم- (۱)ليندهٔ- کمان- (۲)خم- کج- (۳)د آسماني برج نوم- (م- عربی)-

قوس قزح:(قو-س-ق-زح)اسم- واحد- جمع- قوس پهٔ معنی د کمان او قزح پهٔ معنی د سور استعماليږي- زيړه زرغونه- د بوډۍ ټال- کاسه-

قوسې:(قو-سې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)موسې- پيتو- (۲)د پيتو لوبه-

قوش خانه:(قوش-خا-نه)اسم مرکب- واحد- مؤنث- د ښکاري مارغانو د ساتنې ځاۍ- (قوش ترکي)، (خانه فارسي)-

قوصر:(قو-صر)اسم- واحد- مذکر- تود سوړ کېدنه- چې وجود پهٔ ګرمۍ کښې هم يخني محسوسوي-

قوصري:(قو-ص-ري)اسم- د قوصر بيمار-

قوغالے:(قو-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- کنده- مغه وړوکې کنده چې پهٔ وريژو کښې پکښې غوړي اچولے شي- کوغالے-

قورغندل:(قور-غن-دل)اسم- واحد- مؤنث- تومړ- زقوم-

قوقو:(قو-قو)اسم صوت- د چرګ آواز-

قول:(قول)اسم- (۱)خبره- کلام- (۲)وعده- (۳)د يو راګ نوم- (۴)لاس ورکونه-

قول قرار:(قول-ق-رار)اسم مرکب- لوظ قول- اقرار- تړون- عهدنامه-

قولنج:(قو-لنج)اسم- د کولمو درد- د بادکولې درد-

قولنګ:(قو-لنګ)اسم- کولنګ- د ټوپک کولنګ- د دوه نله چرنيز- نلۍ- جمع قولنګونه-

قولنګي:(قو-لنګ-ګي)اسم صفت- قولنګے چرګ- اصيل او ذاتي چرګ-

قولو بولو:(قو-لو-بو-لو)اسم صفت- وګورئ اولو بولو-

قوم:(قوم)اسم- واحد- مذکر- خاندان- عام خلق- عوام- د ډېرو قبيلو مجموعه- (م- عربی)-

قوماندان:(قو-مان-دان)اسم صفت- مشر- سر لښکر-

قوماندانې:(قو-مان-دا-نې)اسم- تانه- د پوليس هېډکوارټر-

قومانده:(قو-مان-ده)اسم- مشري- سرلښکري-

قومي:(قو-مي)اسم- عوامي- د قوم-

قوميت:(قو-مي-يت)اسم- نسل- ذات- اصل-

قوه:(ق-وه)اسم صفت- طاقت- زور- قوت-

قوي:(ق-وي)اسم صفت- کره- مضبوط- ټينګ- توانا- تندرست- چاق و چوبند- د قوت خاوند-

قويت:(قو-ويت)اسم- واحد- مذکر- قواعد- پرېټ- پرېډ- پی ټی- جمع قويتونه-

قهار:(قه-هار)اسم صفت- (۱)ډېر طاقتور- فتح من- غصه ناک- (۲)د الله تعالی يو صفتي نوم-

قهر:(ق-هر)اسم- (۱)جلال- غضب- غصه- (۲)غلبه- (۳)ځېرې آزار- (۴)رټنه- کوتنه- (م- عربی)-

قهرژن:(ق-هر-ژن)اسم صفت- غصه ناک- غضب ناک-

قهرمان:(ق-هر-مان/قه-ره-مان)اسم صفت- بااختياره حاکم- د اقتدار مالک-

قهرول:(قه-ره-ول)مصدر متعدی- غصه کول- قور وروستل- پهٔ غصه مجبورول-

قهرون:(قه-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ قهرول-

قهرونکے:(قه-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قهرونکي- مؤنث قهرونکې- وګورئ قهرول-

قهرونګ:(قه-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ قهرول-

قهرونه:(قه-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قهرول-

قهروهٔ:(قه-ره-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قهرول-

قهرېدل:(قه-رې-دل)مصدر لازم- غصه کېدل- تنګېدل-

قهرېدلے:(قه-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع قهرېدلي- مؤنث قهرېدلې- وګورئ قهرېدل-

قهرېدن:(قه-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ قهرېدل-

قهرېدنګ:(قه-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ قهرېدل-

قهرېدنه:(قه-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قهرېدل-

قهرېدونکے:(قه-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قهرېدونکي- مؤنث قهرېدونکې- وګورئ قهرېدل-

قهرېدهٔ:(قه-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ قهرېدل-

قهقهه:(قه-ق-هه)اسم- پهٔ زوره زوره خندنه-

قهوه:(قه-وه/قا-وه)اسم- مؤنث- (۱)شنې چاۍ- يو قسم تخم چې د جوشولو نه وروستو څښلے شي-

قیادت:(قَ-یا-دَت)اسم- پېشوائي- رهنمائي- سرپرستي- (م- عربي)-
قیاس:(قَیـاس)اسم- واحد- مذکر- اندازه- رایٔ- خیال- ګومان- اټکل- (م- عربي)-
قیاسول:(قَیا-سَ-وَل)مصدر متعدی- اندازه کول- رایٔ ورکول- خیال کول- ګومان کول-
قیاسون:(قَیا-سَ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ قیاسول-
قیاسونکے:(قَیا-سَ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قیاسونکي- مؤنث قیاسونکې- وګورئ قیاسول-
قیاسونګ:(قَیا-سَ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ قیاسول-
قیاسونه:(قَیا-سَ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قیاسول-
قیاسوۀ:(قَیا-سَ-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ قیاسول-
قیاسي:(قَیا-سي)اسم صفت- اړتاوکه- خیالي- وهمي- قیاس سره متعلق-
قیافه:(قَیا-فه)اسم- (۱)دَ مخ بشره- کړۀ وړۀ- خد و خال- (۲)پۀ مخ نښې-
قیام:(قِ-یام)اسم- واحد- مذکر- (۱)اودرېدنه- (۲)کښېناستنه- وسېدنه- (م- عربي)-
قیامت:(قیا-مَت)اسم- (۱)دَ جزا او سزا ورځ- دَ حساب کتاب ورځ- محشر- آخرت- (۲)ناپائیداره- ډېر ګران- (م- عربي)-
قیامت ګُلے:(قَیا-مت-ګُ-لے)اسم- یو زیړرنګے ګل-
قیچ:(قیچ)اسم صفت- واحد- مذکر- ړوند- چغر- کوږ سترګے- کامګ- چقے- (م- فارسي)-
قیراط:(قی-راط)اسم- یوه رتي-
قیصه:(قی-صه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ قیصی-
قیصی:(قی-صی)اسم- واحد- مؤنث- قیصه- داستان- حکایت- قصه-
قیصې قطارې:(قی-صې-قَ-طا-رې)اسم مرکب- (۱)اُوږد بیان- انې بانې- مغه دغه-
قیم:(قی-یم)اسم- قیام- دَ اطاعت او عبادت دَ پاره ودرېدنه-
قیماق:(قی-ماق)اسم- پېروے- کُچ-
قیمت:(قی-مت)اسم- (۱)بېعه- بیه- نرخ- دَ یو څیز دَ سر پیسې- (۲)حېثیت-
قیمتی:(قی-مه-تی)صفت- ګران- دَ قیمت سره متعلق- ډېرې بېعې- ښۀ- اعلی- دَ ډېر قدر-
قېچی:(قې-چي)اسم- واحد- مؤنث- قېنچی-
قېد:(قېد)اسم- واحد- مذکر- (۱)تاکید- پابندی- بند- (۲)بندیخانه- زندان- جېل- (م- عربي)-
قېدول:(قے-ده-وَل)مصدر متعدی- نیول- بندی کول- بندیوانول- زندان ته اچول- جېل ته لېږل-
قېدون:(قے-ده-وَن)حاصل مصدر- وګورئ قېدول-
قېدونکے:(قے-ده-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قېدونکي- مؤنث قېدونکې- وګورئ قېدول-
قېدونګ:(قے-ده-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ قېدول-
قېدونه:(قے-ده-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قېدول-
قېدوۀ:(قے-ده-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ قېدول-
قېدیان:(قېد-یانَ/قے-دیان)اسم- جمع واحد قېدی- بندیان- بندیوان- جیلیان-
قېدېدل:(قے-دې-دَل)مصدر لازم- بندېدل- بندی کېدل- بندیوانېدل-
قېدېدن:(قے-دې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ قېدېدل-
قېدېدنګ:(قے-دې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ قېدېدل-
قېدېدنه:(قے-دې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ قېدېدل-
قېدېدونکے:(قے-دې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع قېدېدونکي- مؤنث قېدېدونکې- وګورئ قېدېدل-
قېدېدۀ:(قے-دې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ قېدېدل-
قېدی:(قے-دي)اسم صفت- بندی- جېلي- بندیوان- زنداني-
قېزه:(قې-زه)اسم- واحد- مؤنث- لګام- واګې-
قېس:(قېس)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ یو مشهور عاشق نوم- (۲)دَ عربو دَ یوې قبیلې دَ سردار نوم-
قېصر:(قے-صر)اسم- دَ روم دَ بادشاه لقب- (م- عربي)-
قېضه:(قې-ضه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قوده- دَ رېبلو شوؤ وښو ړک موټے- (۲)ملونه- واګه- جلب- جیلب-
قېف:(قېف)اسم- واحد- مذکر- کېف- کېپ- پیک- شوړانی- (م- عربي)-
قېلوله:(قے-لو-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ غرمې دَ ډوډۍ نه پس اودۀ کېدنه- (م- عربي)-
قېمه:(قې-مه)اسم- مؤنث- ټکولے شوې غوښه-
قېنج:(قېنج)اسم- واحد- مذکر- مکېز- ناز و ادا-
قېنچی:(قېن-چي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ قېچی- غچی-
قی:(قي)اسم- واحد- مؤنث- الټی- باکۍ- اُوکې- ځربنونه-
قے:(قے)اسم- واحد- مذکر- باکی- باقی- ګرخون- ړوقی- کانګې- الټۍ-

ک:(کاف)حرف- دَ پښتو د حروف تهجی دوه دېرشم حرف چې دَ ابجدو پهٔ حساب يُ شمېر شل دے- پهٔ خينو الفاظو کښې دا حرف " ق " سره هم بدليږی-

کا:(کا)مضارع- کوی- کړی- وکړه- (دَ کړل مضارع)-

کا:(کا)اسم- واحد- مؤنث- خارښ- خاربښت- کهه- (افغانستان)-

کابر:(کا-بَر)اسم- واحد- مذکر- دَ اُسپنې آله چې دَ اوبښ کته پرې لهٔ وښو او لوخې نه ېکولے شی-

کابک:(کا-بُک)اسم- واحد- مذکر- دَ کونترو دَ وُسېدو ځایُ- هغه واړهٔ واړهٔ تاخونه چې کونترې پکښې ساتلے شی- جمع کابکونه- (م- فارسی)-

کابوس:(کا-بُوس)اسم- واحد- مؤنث- خپسه- خپسکه- دَ يوې بيماری نوم چې پهٔ خوب کښې راځی-

کابين:(کا-بين)اسم- واحد- مذکر- وَلور- مهر- دَ مهر روپی- (عربی)-

کابينَ نامه:(کا-بين-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- نکاح نامه- مهرنامه- دَ وادهٔ دَ رجسټری کاغذ-

کابينه:(کا-بی-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وزيرانو ټولګے- دَ وزيرانو مجلس- جمع کابينې- (م- فرانسيسی)-

کاپر:(کا-پر)اسم- واحد- مذکر- پټونکے- دَ حق نه انکار کونکے- دَ کافر عاميانه تورے- (م- عربی کافر)-

کاپرازغے:(کا-پر-از-غے)اسم- واحد- مذکر- خړ رنګ لرونکے يو قسم ازغن بوټے چې کلک ازغی لری-

کاپرچټ:(کا-پر-چټ)اسم- واحد- مذکر- دَ چړې او تبر پهٔ شان دوه قسمه لرونکې يوه تېره وسله(اسلحه)-

کاپرخلے:(کا-پر-خُ-لے)اسم- واحد- مذکر- پوڅکی- خربړے- پوڅے- ستورے- يو قسم مرخېړے-

کاپرګل:(کا-پر-ګل)اسم- واحد- مذکر- نمرپرست- زيړ رنګ لرونکے ګل- نمرګل- نباتاتی نوم هيلنتس اينس (HELIANTHUS ANNUS)-

کاپور:(کا-پُور)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ کافور عاميانه قرات-

کاپی:(کا-پی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مجلد صفا کاغذ چې ليک پکښې کولے شیَ- (۲)نقل- دَ يو ليکلی کاغذ نه پهٔ لاس يا پهٔ مشين اخستے نقل-

کاپيړه:(کا-پی-ړه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- مضبوط- غټ-

کات:(کات)اسم- واحد- مذکر- بياتی- کاز- قينچی-

کاتب:(کا-تب)اسم صفت- واحد- مذکر- خوشخط ليکونکے- خوشنويس- کتابت کونکے- جمع کاتبان- مؤنث کاتبه-

کاتبی:(کا-ت-بي)اسم- (۱)دَ کتابت کار- (۲)يو قسم واسکټ-

کاتره:(کاتَ-ره)اسم- واحد- مؤنث- کاتری- غټه خمبه-- لوئ کندو-

کاتری:(کاتَ-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګوری: کاتره-

کاتک:(کا-تک)اسم- واحد- مذکر- دَ هندی کال اوومه مياشت- کتک- کاتی-

کاتل:(کا-تَل)مصدر- پهٔ بياتی پرېکول- قينچی کول- سکڼل-

کاتلے:(کا-تَ-لے)اسم- واحد- مذکر- شمشتی-کشپ- جمع کاتلی-

کاته:(کا-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تجارتی معامله- لېن دېن- حساب کتاب- (۲)دَ سوداګرو وغېره دَ حساب ليکلو کتاب- (م- هندی کهاتا)-

کاته:(کا-ته)صفت- ښکته- لاندې- کته-

کاتهٔ:(کا-تهٔ)حاصلِ مصدر دَ کتل نه او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګوری: کتل-

کاتيئے:(کا-تی-ئے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ذاتی قيمته- خلاصه زمکه- هغه زمکه چې پهٔ ځهٔ کښې بنده نهٔ وی- (۲)اکتوبر-

کاتی:(کا-تی)اسم- واحد- مؤنث- کاتک- کتک-

کاټ:(کاټ)اسم صفت- کاټی- کمے- لړوالے- (دَ غلې) کمے-

کاټا:(کا-ټا)اسم- ټاکر- سپين ږيرے- عمرخوړلے- بوډا-

کاټلے:(کاټ-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ ښکاری ټوپک کارتوس-

کاټول:(کا-ټه-وَل)مصدرِ لازم- کمول- لږول-

کاټون:(کا-ټه-وَن)حاصلِ مصدر- وګوری: کاټول-

کاټونکے:(کا-ټه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع کاټونکی- مؤنث کاټونکې- وګوری: کاټول-

کاټونګ:(کا-ټه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګوری: کاټول-

کاټونه:(کا-ټه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګوری: کاټول-

کاټه:(کا-ټه)اسم- واحد- مؤنث- کټه- ګټه- (افغانستان)-

کاټی:(کا-ټي)اسم- واحد- مؤنث- کاټی- (۱)خرڅ ګير- (۲)دَ زين لرګے- (۳)کالبوت- تنه- جُثه- سټه- (۴)تېکے- کڅوړه- غلاف- (۵)هغه عدد چې تفريق کيږی- (۶)راګرځونه- وګوری: کاټ- (م- هندی)-

کاټياله:(کاټ-يا-له)اسم- واحد- مؤنث- لوئ نهر- لويه وياله- پاتاو- جمع کاټيالې-

کاټېری:(کا-ټې-ری)اسم- واحد- مؤنث- کټېری- کړېځی- کوړځو- ارکاره- لاغو- کړځو- (افغانستان)-

کاټی:(کا-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګوری: کاټی-

کاج:(کاج)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ صنوبر وُنه- (۲)څپېره- څپړه- (۳)څپک- چپک- (۴)افسوس- (۵)يو غرنيز بوټے- (۶)دَ تنې سورے-

کاجر:(کا-جَر)اسم صفت- واحد- مذکر- چغر- برګ سترګے- بټ سترګے- رډ سترګے-

کاجل:(کا-جَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)کجل- رانجهٔ- (۲)دَ يوې تورکے-

کاجی:(کا-جي)اسم- واحد- مؤنث- ټګی برګی- چل- دوکه- پهٔ لوبه کښې ټګی کونه-

کاجيره:(کا-جي-ره)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم واښهٔ چې دَ جامو پهٔ رنګولو کښې پکارولے شی-

کاجی ګڼ:(کا-جی-ګڼ)اسم صفت- واحد- مذکر- ټګی ژن- پهٔ لوبه کښې ټګی کونکے-

"ی" (ښی-رل)، "ې"(هې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لي)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګوری: تشريحات صفحه ۱

کاچک:(کا-چک)اسم- واحد- مذکر- دَ یو سُر نامه-

کاچ ماچ:(کاچ-ماچ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کچ ماچو-

کاچوغړکه:(کا-چو-غه-ړهٔ-که)اسم- مؤنث- میرکاټې- دَ جینکو دَ میرکاټو پهٔ لوبه کښې پینځه واړهٔ میرکاټې بره ویشتنه او بیرته پهٔ یوهٔ لاس اخستنه-

کاچوغکه:(کا-چو-غه-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم تریخ او ازغن بوټے-

کاچوغه:(کا-چو-غه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کاشوغه-

کاچه:(کا-چه)اسم صفت- شاګرد- نوے اموخته- (۲)اسم- واحد- مؤنث- حد- حدود- انداز- (۲)تشبیه-

کاڅل:(کا-څل)مصدر- اوبدل- اودل-

کاڅې:(کا-څې)اسم- واحد- مؤنث- ږمنځ- ږومنځ- منزځ- دَ جولا شانه- دَ دوړ دَ اُبدلو ږمنځ-

کاڅې:(کا-څې)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ لینده یا مچوغنه وغیره کښې دَ کاڼي ایښودو دَ پاره دَ څرمنې یا تارونو پټې- پټاره- پټاخ- پټاک- کاڅه-

کاخ:(کاخ)اسم- واحد- مذکر- محل- لوړ عمارت- قصر- ماڼۍ-

کاخت:(کاخت)اسم- واحد- مذکر- قحط- قات- نهٔ پېدا کېدونکے-

کاختې:(کاخ-تې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کاخت- اېلانۍ- ارانۍ- قاتې- قحطي- قحط- وُچ کال- ړوکال- خُشک سالي- (۲)متره- تنګسیا-

کاخشه:(کاخ-شه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ښځو هغه پېزار چې ګلکاري پرې شوې وي- جمع کاخشې-

کاد:(کاد)اسم- واحد- مذکر- لالچ- حرص-

کادانه:(کا-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم دانهٔ- (۲)پهٔ زمکه کښې دَ غنمو وغیره پټونه- جمع کادانې-

کادرے:(کا-درے)اسم- واحد- مذکر- دَ چرګ شاټینکه- (۲)دَ څناورو لرے او کولمې- کتکې-

کادمے:(کاد-مے)اسم- واحد- مذکر- دَ وړو یوه لوبه- (افغانستان)-

کاذب:(کا-ذب)اسم صفت- دروغژن- دروغ ګو- دروغ ویونکے- (م- عربی)-

کار:(کار)اسم- واحد- مؤنث- کسب- پیشه- جمع کارونه-

کاربارے:(کار-با-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- تلولے- خدمتې- وفادار- تابعدار-

کاربسکه:(کار-بس-که)اسم- واحد- مؤنث- کربسکه- کاربیسکے- پوُمبه- جمع کاربسکې-

کاربن:(کار-بن)اسم- واحد- مذکر- کاربن ډائی آکسائیډ- یو قسم ګېس-

کاربن پیپر:(کار-بن-پے-پر)اسم- واحد- مذکر- دَ تور رنګ یو قسم کاغذ-

کاربند:(کار-بند)اسم- واحد- مذکر- پهٔ عمل کښې راوستونکے- پېروکار-

کاربن ډائی آکسائیډ:(کار-بن-ډا-ئي-اک-سا-ئیډ)اسم- مذکر- وګورئ کاربن-

کاربوری:(کار-بو-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کربوړے- چرمښکې- چمچوری-

کاربیسکے:(کار-بیس-کے)اسم- واحد- مذکر- جمع کاربیسکې- وګورئ کاربسکه-

کار بېګار:(کار-بې-ګار)اسم مرکب- واحد- مذکر- (۱)کار رزوګار- وظیفه- (۲)دَ بل پهٔ ښېګړه راتلنه-

کارت:(کارت)اسم- واحد- مذکر- کارړ- (افغانستان)-

کارتوس:(کار-توس)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)کالتوس- (۲)جنجن-

کارتن:(کار-تن)اسم- واحد- مذکر- کاټن-

کارټولګے:(کار-ټول-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- ببره- دَ کارکونکو یا خواری کښو پله- (افغانستان)-

کارچلاوو:(کار-چه-لا-وو)اسم صفت- واحد- مذکر- کار چلونکے- کار اېستونکے-

کارخانه:(کار-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خرڅون دَ پاره دَ څیزونو جوړونکې اداره چې ګڼ کسان پکښې عوضاً کار کوی- دَ کار کولو ځائې-

کاردار:(کار-دار)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناظر- منېجر- پهٔ کار نظر لرونکے- (۲)اجاره دار-

کارداری:(کار-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ کار مهارت- (۲)ماموریت- وظیفه- کار- دنده- رسمی دنده- (افغانستان)-

کاردان:(کار-دان)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تجربه کار- هوښیار- (۲)مختار- کار چلونکے- جمع کاردانان-

کاردانی:(کار-دا-نی)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ کار پوهېدنه- ځیرکی- هوښیاری-

کارړ:(کارړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سخت کاغذ- کلک کاغذ- (۲)کارت- دَ وادهٔ ښادئ دعوت نامه-

کارزار:(کار-زار)اسم- واحد- مذکر- جنګ- جګړه- مقابله- معرکه-

کارساز:(کار-ساز)اسم صفت- واحد- مذکر- کار جوړونکے-

کارسازی:(کار-سا-زی)اسم- واحد- مؤنث- کار جوړونه- ضرورت پوره کونه- حاجت پوره کونه-

کارستان:(کار-رس-تان)اسم صفت- واحد- مذکر- چالاک- هوښیار- کار ویستونکے-

کارسمونے:(کار-سه-مه-وُو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- کارساز- کار جوړونکے-

کارښت:(کا-رښت)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه آله چې دَ هغې پهٔ ذریعه لهٔ انګورو شیره جوړیږی- (۲)کرړے یا حوض چې دَ انګورو شیره پکښې جوړولے شی- (۳)دَ کار ځائې-

کارغهٔ:(کار-غهٔ)اسم- واحد- مذکر- کارګه- قارغهٔ- تور رنګ لرونکے یو مارغهٔ چې حرام ګڼلے شی- جمع کارغان- سائنسی نوم دَ کاروس (CARUS) دَ خاندان یو مارغهٔ-

کارغهٔ پل:(کار-غهٔ-پل)اسم- دَ کارغهٔ دَ پنجو پهٔ شان یو قسم بوټے چې پهٔ سپرلی کښې شین کیږی او پهٔ وریژو کښې دَ خوشبو دَ پاره اچولے شی-

(افغانستان)-

کارغهٔ ټکی:(کار-غهٔ-ټه-کی)اسم- واحد- مؤنث- مرغی څکی- یو قسم وابهٔ-

کارغهٔ ټونګه:(کار-غهٔ-ټونګ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ ګل لاله یو قسم- جمع کارغهٔ ټونګې-

کارفرما:(کار-فر-ما)اسم صفت- واحد- مذکر- کار ورکونکے او اخستونکے- (م- فارسی)-

کارفهمی:(کار-فه-می)اسم- مؤنث- پهٔ کار پوهېدنه- (م- فارسی)-

کارګردګی:(کار-ګر-ده-ګی)اسم صفت- کړے کار- (م- فارسی)-

کار کسب:(کار-کهٔ-سب)اسم- واحد- مذکر- زیست روزګار- دنده- کار روزګار-

کارکشه:(کار-کهٔ-شه)اسم- واحد- مؤنث- ترنګړ- لهٔ میزری جوړه ترنګړ چې دَ بوسو یا ګیاه وغیره دَ راوړلو دَ پاره پکاریږی-

کارکن:(کار-کُن)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کار کونکے- (۲)خواری کښ- محنتی- چارندوکے-

کارکوټے:(کار-کو-ټے)اسم- واحد- مذکر- کاکوټے- یو قسم بوټے چې دَ سپرلی پهٔ موسم کښې کیږی او دَ سلاد پهٔ طور کچه دَ روټی سره خوړلے شی-

کارکوچکه:(کار-کو-چه-که)اسم- واحد- مؤنث- کالکوچکه- کالکوچه- دانګه وهنه- جمع کارکوچکې-

کارکونړی:(کار-کون-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- پوچک- کارکونړے- کالکنړی- کالکونړی-

کارکونړے:(کار-کون-ړے)اسم- واحد- مذکر- وُګوری کارکونړی- جمع کارکونړی-

کارکونکے:(کار-که-وون-کے)اسم فاعل- کاریګر- زیارکښ-

کارګا:(کار-ګا)اسم- واحد- مؤنث- دَ پرتوغابښونو جوړولو آله- کارګه-

کارګاه:(کار-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- ورکشاپ- دَ کار کولو ځائ- دَ کار کونکو ځائ- کارخانه-

کارګر:(کار-ګر)صفت- مذکر- (۱)فائده من- فائده ورکونکے- پهٔ کار راتلونکے- (۲)مزدور- کاریګر-

کارګری:(کار-ګهٔ-ری)اسم- مؤنث- کارګر کار-

کارګوټے:(کار-ګو-ټے)اسم تصغیر- زړوکے کار- سپک کار-

کارګهٔ:(کار-ګهٔ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کارغهٔ- قارغهٔ- کارګهٔ- کاغ- وروغ- وراغ- (۲)پن پرک- (م- هندی)-

کارګه:(کار-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وُګوری کارګا-

کارګه ټکی:(کار-ګهٔ-ټه-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم ساګ- پنبرک- پنبېرک- (۲)مرغی څکی-

کارنامه:(کار-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- یادګاری کار- هغه لوئ کار چې یاد پاتې شی- جمع کارنامې-

کاروان:(کار-وان)اسم- واحد- مذکر- قافله- جمع کاروانونه-

کاروان بوټے:(کار-وان-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ بېدیا کښې زرغُنېدونکے یو قسم بوټے-

کاروان سرائ:(کار-وان-سرائ)اسم- واحد- مؤنث- دَ کاروان دَ درېدو ځائ-

کاروانه:(کار-وا-نه)اسم- واحد- مؤنث- کروانه- کره وانه- (۱)سرپوښ غټ لوښے چې فوځیانو ته پکښې خوړه وړلے شی- پهٔ کاروانه کښې دَ فوځیانو دَ پاره پوخ خوراک-

کاروانی:(کار-وا-نی)اسم- دَ کاروان سره متعلق- وُګوری کاروان-

کاروانی ستورے:(کار-وا-نی-ستو-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ سبا ستورے- هغه ستورے چې سبائی ته نژدې راخیژی او کاروانونه دَ هغه پهٔ لیدو روانیږی-

کاروائی:(کا-ره-وا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- بندوبست- انتظام- دَ یو کار جاری ساتنه- دَ یو کار کونه- دَ عدالت دَ کار یا دَ عمل درآمد روئیداد-

کاروبار:(کار-رو-بار)اسم- واحد- مذکر- پېشه- مشغله- معاش- دَ روزګار ذریعه-

کاروباری:(کا-رو-با-ری)اسم صفت- کاروبار کونکے- وُګوری کاروبار-

کارول:(کا-ره-وَل)مصدر متعدی- (۱)کار ترې اخستل- پهٔ کار اچول- استعمالول- (۲)لګول- خرڅ کول- (۳)پارول- راپارول- (۴)پاکول- وله ایستل- وله کیندل یا پاکول-

کارولے:(کا-ره-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کارولی- مؤنث کارولې- وُګوری کارول-

کارون:(کا-ره-وَن)حاصل مصدر- وُګوری کارول-

کارونکے:(کا-ره-وون-کے)اسم فاعل- جمع کارونکی- مؤنث کارونکې- وُګوری کارول-

کارونه:(کا-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وُګوری کارول-

کاره:(کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ارکاره- هرکاره- کرڅے- (۲)کواره- (۳)اره- غټه ټوکری- جمع کارې-

کاری:(کا-ری)اسم صفت- کامل- پوره- کافی-

کاری:(کا-ری)اسم صفت- (۱)دَ کار سړے- محنتی- کاریګر- (۲)دَ کټې وړ- دَ کار وړ- موثر- اغېزناک- تاثیر لرونکے-

کاریګر:(کا-ری-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- کارګر- (۱)اُستکار- دَ کسب خاوند- (۲)فنکار- اُرټسټ- نقاش- ځېرې جوړونکے- (۳)عمارت جوړونکے- (۴)ماهر- هوښیار- هښیار- دَ کار ښتن-

کاریګر:(کا-ری-ګر)اسم- واحد- مذکر- یو مارغهٔ چې دَ ونې پهٔ سټې (تنه) ناست وی او پهٔ خپله مښوکه دَ ونې سټې ټکوی-

کاریګری:(کار-ری-ګهٔ-ری)اسم- کار- کار کونه- مهارت- دَ کاریګر کسب-

کارین:(کا-رین)اسم صفت- هغه سخته کانړیزه زمکه چې کله کله پکښې فصل کرلے شی-

كارينده:(كا-رين-ده)اسم صفت- محنتي- كاركونكے- (م- فارسي)-

كاريونټ:(كار-يو-نټ)اسم- واحد- مذكر- كارټولګے- دَ كار كونكو پله- دَ كاريندو انډيوالي- (افغانستان)-

كاريدل:(كا-رې-دل)مصدر- استعماليدل-

كاربز:(كا-ربز)اسم- واحد- مذكر- پهٔ پټې كښې د اُبو وركولو نالۍ- دَ زمكې لاندې دَ اُبهٔ خور نالي- سپرغۍ- جمع كاربزونه- (م- فارسي)-

كاربزګ:(كا-رې-زګ)اسم- واحد- مذكر- كاربزه- هغه بوټے چې دَ غنمو پهٔ فصل كښې پخپله ټوكيږي-

كاربزه:(كا-رې-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ كاربزګ-

كاربزي:(كا-رې-زي)اسم- هغه زمكه چې دَ كاربز پهٔ اُبو خړوبيږي-

كاري:(كا-ري)اسم- واحد- مؤنث- دَ انګورو دَ وړلو كجاوه-

كاړ:(كاړ)اسم صفت- (۱)لهٔ كاڼو ډكه زمكه- شنكاړ- كربړ- جغل- (۲)چې كاڼي ترې راوېستلے شي- كان-

كاړژنه:(كاړ-ژهٔ-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- كاڼي لرونكې زمكه-

كاړساغ:(كاړ-ساغ)اسم صفت- واحد- مذكر- داسې سړے چې بدن ئې نرے نروچكے، او مخ ئې وړد وي- كاړساو- بوټ- ترش رو-

كاړساڅ:(كاړ-ساڅ)اسم صفت- واحد- مذكر- بُوټ- تُرش رو- وګورئ كاړساغ-

كاړساوي:(كاړ-سا-وي)اسم- واحد- مذكر- ګورملتوب- بړوسواله- غضب- خفګان- قهر- غصه-

كاړغه:(كاړ-غه)اسم- واحد- مؤنث- كاغه- جمع كاړغې-

كاړكاړ:(كاړ-كاړ)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ لاده باده پرېوتنه- بدحالي- ډېره بدحالي-

كاړكوت:(كاړ-كوت)اسم- كولكوتي (وبښتهٔ)كاركوتي- ګوركوتي

كاړو:(كا-ړو)اسم- واحد- مذكر- داغ كړې ماستهٔ- كړي- كاړي-

كاړو:(كا-ړو)اسم صفت- (۱)نامرد- (۲)ټګن- (۳)كاړے-

كاړ و كوړ:(كا-ړو-كوړ)اسم صوت- هغه اواز چې دَ لوښو خپلو كښې دَ جنګېدو پهٔ وجه پېدا كيږي- كړ بكوړ- كړ كړ-

كاړه:(كا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- اريړه- جمع كاړې-

كاړه:(كا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګرم خيز- جوشانده- دوائي چې خلق ئې دَ ګرموالي دَ پاره استعمالوي- (۲)عرق- لعاب- لتوبړے- كاړي-

كاړه:(كا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځائې چې خلق پكښې پرزوني (پرخوني) كوي- دَ مقابلې ځائې- (م- هندي كهاړه)-

كاړي:(كا-ړي)اسم- (۱)ټكېدلې قيمه- كوفته- (۲)داغ كړې ماستهٔ- كاړو- كړي-

كاړي درياب:(كا-ړي-در-ياب)اسم- واحد- مذكر- چاپېرسيند- اوقيانوس- لوئې سمندر-

كاړين:(كا-ړين)صفت- دَ كاړ سره متعلق- وګورئ كاړ- مؤنث كاړينه-

كاړينګ:(كا-ړينګ)اسم صفت- واحد- مذكر- كړې سترګې لرونكے- كاږے- چغر- چپا- چپك- كاږا-

كاړې واړې:(كا-ړې-وا-ړې)اسم صفت- (۱)پريشان- خفه- (۲)ټپ- (۳)ستومانه- سُست- لټ- شلټ- سترے- كاړې واړې-

كاړې واړې:(كا-ړې-وا-ړې)اسم صفت- وګورئ كاړې واړې-

كاړے:(كا-ړے)اسم صفت- كوفته- ټكولے شوے- قيمه شوے-

كاز:(كاز)اسم- واحد- مذكر- دَ صنوبر ونه- خنغوزے- جنغوزے- نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ صنوبر-

كازمن:(كاز-من)اسم صفت- مُحتاج- حاجت مند- آرزومند- مشتاق- تلوسه لرونكے-

كازي خر:(كا-زي-خر)اسم- ماماغواګي- يو قسم ډېرې پښې لرونكې خړه حشره-

كاژ:(كاژ)اسم- واحد- مذكر- (۱)مينه- تلوسه- شوق- ارزو- (۲- صفت)كوږ سترګے-

كاږبل:(كاږ-بل)اسم- واحد- مذكر- كوږ- كوګ- كږبل- كوږبل- د يو ځناور نوم-

كاږل:(كا-ږل)مصدر متعدي- (۱)وبستل- راكښل- كلكول- تنګول- (۲)رد كول- بېكاره كول- كږل-

كاږلے:(كا-ږهٔ-لے)اسم مفعول صفت- وګورئ كاږل-

كاږنه:(كا-ږهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ كاږل-

كاږه:(كا-ږه)اسم صفت- واحد- مؤنث- كږه- غلطه-

كاږهٔ:(كا-ږهٔ)اسم- جمع- مذكر- يو بوټے او دَ هغې تخم چې دَ دوايي پهٔ طور دَ هاضمې دَ پاره پكارولے شي- كاږهٔ وبلنے- نباتاتي نوم پمپنيلا انيسم (PIMPINELA ANISUM)- (۲- صفت)دَ كوږ جمع-

كاږهٔ بل:(كا-ږهٔ-بل)اسم- واحد- مذكر- كوږ- كاږبل- (افغانستان)-

كاږهٔ واږهٔ:(كا-ږهٔ-وا-ږهٔ)صفت- جمع- مذكر- دَ كوږ وږ جمع-

كاږهٔ وبلنے:(كا-ږهٔ-وې-لهٔ-نے)اسم- وګورئ كاږهٔ-

كاسب:(كا-سب)اسم- واحد- مذكر- كسب ګر- څهٔ كار پېشه كونكے- پېشه ور- چاروكے- چارے- چارندوكے- (عربي)-

كاست:(كاست)اسم- واحد- مذكر- (۱)دروغ- (۲)تاوان- (۳)دَ يو بوټي نوم- (م- فارسي)-

كاسج:(كا-سج)اسم- ششكے- زركے- يو قسم ځناور- شكوڼ- (م- فارسي)-

كاسد:(كا-سد)اسم- واحد- مذكر- كوټه- بې اصل- بې رواجه- بې رونقه- بدكرداره- (م- فارسي)-

كاسني:(كاس-ني)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)تريخه- تريزه- سيګولے- كاشني- يو رنګ چې دَ كاسني بوټي پهٔ شان وي- (۲)يو بوټے چې ارغواني رنګ لري او پهٔ شفتلو كښې كيږي- نباتاتي نوم سيكوريم انټي بس (CICHORIUM INTYBUS)- (۳)دَ اودي رنګ دارو-

زبر"(غ-بهٔ-ره)، زوركے"(شل)، پېش"(نو-كا-ره)، زېر"(كِ-تاب)، جزم"(شكوڼ)، ة"(ز-ړه)، ۀ"(پو-ښې-دهٔ)

کاسه:(کا-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پیاله- (۲)دَ خوړلو څښلو کونډۍ- پیمانه- لوښے- ټوټه- ټوټی-

کاسه گرب:(کا-سه-گرب)اسم- واحد- مذکر- شکرناتے- شمشتی- کاتلے-

کاسیر:(کا-سیر)اسم صفت- بدچلن- بدکرداره- بدعمله- نمک حرام- زناکار- مؤنث کاسیره-

کاسیرتوب:(کا-سیر-توب)اسم- دَ کاسیری عمل-

کاسیره:(کا-سی-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ کاسیر مؤنث- وګورئ کاسیر-

کاسیره:(کا-سی-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ پېسې څلورمه حصه- یوه پخوانی سکه- (۲)معمولی څیز-

کاسیری:(کا-سی-ری)اسم- بدعملي- پهٔ غلطه لاره تلنه- دَ کاسیر عمل-

کاسی:(کا-سی)اسم- (۱)ساخت- کوتری- پتاخ- تاکی- پتق- کاڅی- کوتپړ-

کاش:(کاش)کلمه- کشکې- کاشکې- دَ افسوس کلمه- ارمان- ګنديږ (م- فارسی)-

کاش:(کاش)اسم- واحد- مذکر- دَ تماچې نیام-

کاشت:(کاشت)اسم- واحد- مذکر- کَر- کرنه- (م- فارسی)-

کاشتکار:(کاشت-کار)اسم- واحد- مذکر- کَر کوُنکے- کرونده گر-

کاش خرجین:(کاش-خُر-جین)اسم- واحد- مذکر- دَ زین دَ ترِلو دَ پاره دَ څرمنې پټی-

کاشره:(کاش-ره)اسم- واحد- مؤنث- کاشرے- کاشین- (۱)کُلپې- دَ اخښلیو شویو اُوړو دَ ایښو لوښے- (۲)دَ ګلونو دَ ایښودو لوښے- جمع کاشرې-

کاشرے:(کاش-رے)اسم- وګورئ کاشره-

کاشف:(کا-شف)اسم صفت- ظاهرونکے- ښکاره کونکے- لوڅونکے-

کاش کامبورے:(کاش-کام-بو-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پاتې شوے- ګډوډ- اخوا دېخوا- (۲)بې وسه خلق- جمع کاش کامبوری-

کاشکنوله:(کاش-کُ-نو-له)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اله پکه-

کاشکې:(کاش-کې)کلمهٔ افسوس- وګورئ کاش-

کاشنی:(کاش-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کاسنی-

کاشواز:(کاش-واز)اسم صفت- (۱)کلانکار- داسې سړے چې خان ډېر غټ حسابوی- باړی کونکے- مشروټے- (۲)احمق- سوړر- کمعقل-

کاشوازی:(کاش-وا-زی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کلانکاری- (۲)بې عقلی- کمعقل توب-

کاشوغه:(کا-شو-غه)اسم- واحد- مؤنث- سیپی- قاشوغه- دَ څمڅی پهٔ شان یوه وړه آله چې دَ ګتو پهٔ ځایَ دَ خوراک دَ پاره پکارولے شی- کاچوغه- چمچه-

کاشیگر:(کا-شی-گر)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ رنګدارو خښتو او رنګدارو لوخو جوړولو کاریګر-

کا شی گری:(کا-شی-گهٔ-ری)اسم- مؤنث- دَ کاشیگر کار-

کاشین:(کا-شین)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کاشره-

کاشي:(کا-شي)اسم- واحد- مؤنث- دَ کږ یا کږې لَم-

کاغ:(کاغ)اسم صوت- دَ کارغهٔ اواز- کاغ کاغ-

کاغ:(کاغ)اسم صفت- هوښیار- زیرک- دانا- چالاک-

کاغتوب:(کاغ-توب)اسم- مذکر- زیرکتوب- هوښیارتوب- چالاکی-

کاغذ:(کا-غذ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پوګ یا دَ ګیاه وغېره نه جوړه کړے شوې مغه هواره تهه چې دَ لیک دَ پاره پکارولے شی- (۲)پرچه- رقعه- خط- سند- قباله-

کاغذباد:(کا-غذ-باد)اسم- واحد- مذکر- ګوډی- پتنګ- بادیوه- باډیوه-

کاغذدانی:(کا-غذ-دا-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مغه ټوکری چې ردی کاغذونه پکښې اچولے شی-

کاغذی:(کا-غه-ذی)اسم صفت- (۱)نازک- نرم- نرے- (۲)دَ کاغذ نه جوړ شوے-

کاغ کاغ:(کاغ-کاغ)اسم صوت- وګورئ کاغ-

کاغل:(کا-غل)اسم- واحد- مذکر- لسټ- فهرست- فهرس-

کاغه:(کا-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کارغهٔ مؤنث- (۲)صفت- هوښیاره ښځه-

کاغی:(کا-غی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)وګورئ تبخی- (۲)توره مښوکه او سرې پښې لرونکې دَ قارغهٔ پهٔ شان خو دَ قارغهٔ نه وړه مرغی-

کاف:(کاف)دَ "ک" تلفظ- وګورئ "ک"-

کافر:(کا-فر)اسم- واحد- مذکر- کاپر- کفر کوُنکے- دَ اسلام نه ګرځېدلے- مؤنث کافره-

کافرگل:(کا-فر-گل)اسم- واحد- مذکر- کاپرگل- دَ نمرپرست گل- نباتاتی نوم هیلنتس اینس (HELIANTHUS ANNUS)-

کافشه:(کاف-شه)صفت- مؤنث- کوښه- دَ ښځو مغه پېزار چې ګلکاری پرې شوی وی-

کافور:(کا-فور)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم وُنه او دَ مغې نه جوړه یو قسم خوشبویه سپینه دوائی- (۲)دَ سپینو وېښتو دَ پاره استعارتاً استعمالیږی- (م- فارسی)-

کافوری:(کا-فو-ری)اسم صفت- دَ کافور سره متعلق- وګورئ کافور-

کافی:(کا-فی)صفت- پوره- دَ ضرورت دَ پاره پوره- بسیا- (م- عربی)-

کافی:(کا-فی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم چایَ چې خلق یَ څښی-

کاک:(کاک)اسم- واحد- مذکر- (۱)لویه روټی چې دَ کاڼی پهٔ هواره تخته باندې پخیږی- (۲)خوږه روټی- (۳)کمزورے انسان یا حیوان-(۴)وچه غوښه-(۵)بې سلیقې انسان- (۶)پراټه- وېشله- ککوړے- (۷)بوجه-

کاکا:(کا-کا)اسم- واحد- مذکر- کاکاجان- کاکاجی- (۱)دَ پلار ورور- تره- چاچا- اکا- (۲)پښتنو کښې مشر سړی ته دَ احترام او ادب پهٔ وجه استعمالېدونکے تورے-

ی" (ځی-رَل)، ې"(مې-ره-وَل)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کاکاجان:(کا-کا-جان)اسم- واحد- مذکر- د تره د پاره د احترام توری- وګوری کاکا-

کاکاجي:(کا-کا-جي)اسم- واحد- مذکر- وګوری کاکا-

کاکټ پنډی:(کا-کټ-پن-ډی)اسم- واحد- مؤنث- وګوری ګلی پنډا-

کاکروبا:(کاک-رو-با)اسم- مشک و عنبر-

کاکړ:(کا-کړ)اسم صفت- پوخ- استاد- (طنزيه)-

کاکش:(کا-کش)اسم- واحد- مذکر- کوکش- چټ-

کاکشکے:(کا-کش-کے)اسم- واحد- مذکر- ډی- کاکی- ګلی پنډا-

کاکشی:(کا-کە-شی)اسم- د وسو یا بوسو چلونه(ورنه)-

کاک کش:(کاک-کش)اسم- هغه اله چي د بوتل کاک پري ایستل کیږی-

کاکښه:(کا-کە-ښه)اسم- واحد- مؤنث- ترنګړ- کورے-

کاکل:(کا-کل)اسم- زلف- اوربل- د څوکی وبښتهٔ څڼې- (م- فارسی)-

کاکلی:(کا-ک-لی)اسم صفت- (۱)کاکل لرونکے- څڼور- پیکے لرونکے- (۲- اسم)یو قسم مرغی-

کاکنج:(کا-کنج)اسم- یو قسم بوټے چي تخم(دانه)ي د دوا په طور استعمالولے شی- ردن- ایردن- د غنمو په شان یو قسم غله- (م- فارسی)-

کاکوتی:(کا-کو-تی)اسم- جمع- مؤنث- یو قسم خوشبویه او خوندوري پاڼي لرونکے بوټے- وبلنے-

کاکوټی:(کا-کو-ټی)اسم- میچن-

کاکوټے:(کا-کو-ټے)اسم تصغیر- د وروکی د پاره استعمالیدونکے د مینې توری-

کاکوړه:(کا-کو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرغونې- کالکونډې- ترخه ایندوانه- ترخه منه- (۲- صفت)تتله- ترېږی- انبتې ژبه- نباتاتی نوم کوکومس کولوسنتس (CUCUMIS COLOCYNTHIS)- (۳)سوخبدلې- جمع کاکوړې-

کاکوس:(کا-کوس)اسم- واحد- مذکر- بیت الخلا- د حاجت پوره کولو ځاې- ټټی- پاخانه-

کاکی:(کا-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د کاکا مؤنث- (۲)مشرې ښځې ته د احترام توری-

کاکی:(کا-کی)اسم- واحد- مؤنث- کاکیشکے- کاکشکے- کاکیچ- د ملکانو یوه لوبه- ډی-

کاکیری:(کا-کی-ری)اسم- واحد- مؤنث- ککیرے- ککورے-

کاکیچ:(کا-کیچ)اسم- واحد- مذکر- وګوری کاکی ۲-

کاکی:(کا-کی)اسم- واحد- مؤنث- چاچی- ګونګټې- چچړ- د غوشیانو یوه حشره-

کاګانی:(کا-ګا-نی)اسم- واحد- مؤنث- کاګیانی- د شړی یو قسم- کاغانی-

کاګل:(کا-ګل)اسم- واحد- مذکر- اخیړ- لېو- هغه ته یا مخ چي د خوشتې خاورې او بوسو د ګډون نه پس دېوال ته ورکولے شی-

کاګل:(کا-ګل)اسم- واحد- مؤنث- په اُبو کښې راشین کېدونکے یو قسم نل-

کاګیانی:(کاګ-یا-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګوری کاګانی-

کال:(کال)اسم- واحد- مذکر- دولس میاشتې- ۳۶۵ ورځې لرونکې د وخت یوه حصه-

کال:(کال)اسم- واحد- مذکر- (۱)کچه میوه- (۲)ځاې- (۳)د سېلاب لاره- (۴)پېچ وخم- (۵)د پټی نه ګېر چاپېره د ازغنو لښتو احاطه- منهو-

کالا:(کا-لا)اسم- واحد- مؤنث- سامان- جامې- مال- متاع- جنس- جمع کالې-

کالباتے:(کال-با-تے)اسم صفت- (۱)لړ غټدې- وړوکے- (۲)تېز- چالاک- چاغ- ګرندے- چُست-

کالبد:(کال-بد)اسم- واحد- مذکر- کالبوت- پانچه-

کالبر:(کال-بر)اسم- واحد- مذکر- هغه ونه چي یو کال میوه کوی او بل کال نهٔ کوی- سالبره-

کالبوت:(کال-بوت)اسم- واحد- مذکر- وګوری کالبد- (م- فارسی)-

کال په کال:(کال-په-کال)اسم مرکب- هر کال- هر کالې- یو کال بل کال- کالوسر- سالانه- کال تر کال-

کال تر کال:(کال-تر-کال)اسم مرکب- هر کال- د کال نه تر بله کاله- کال په کال-

کالتوس:(کال-توس)اسم- واحد جمع- مذکر- د ټوپک ګولی- جمع کالتوسونه-

کالج:(کا-لج)اسم- واحد- مذکر- د لسم نه تر څوارلسم پوري د اعلی تعلیم حاصلولو درسګاه- لُستخنې- ښوونځے- جامعه- د اعلی تعلیم دارالعلوم- (م- انګریزی)-

کالخوا:(کال-خوا)اسم صفت- (۱)واکمن- مختیار- اختیارمن- واکدار- خپل- (۲)خواخوږے- خېرخواه- کالخوانے-

کالخواه:(کال-خواه)اسم صفت- (۱)مهربان- خېرخواه- خوا خوږے(۲)واکمن- اختیارمند- واکدار- ولی-

کالخوامی:(کال-خوا-می)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مهربانی- خېرخوامی- خواخوږی- (۲)اختیار- خوښه-

کالخوائی:(کال-خوا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- وګوری کالخوامی-

کالخوانے:(کال-خوا-نے)اسم صفت- کالخوا- کالخواه- خېرخواه- (۲)اختیارمن- (۳)ولی-

کالدانه:(کال-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- سالدانه- یوه خطرناکه دانه- جمع کالدانې-

کالر:(کا-لر)اسم- واحد- مذکر- د قمیص غاړه چي پکښې بکرم لګېدلے وی- د قمیص غاړه- غاړکی- وګوری کالړ-

کالړ:(کا-لړ)اسم- واحد- مذکر- کالر- هغه پټی چي د قمیص، واسکټ یا شېروانۍ په غاړه کښې لګولے شی او د غاړې نه راتاوېږی-

کالغ:(کا-لغ)اسم- د کال- سالانه-

کالک:(کا-لک)اسم- کالکه- د مالوچو غوزه- د پومبې پلے چې پکښې پومبه لاموجوده وی-

کالکا:(کا-له-کا)اسم- وګورئ کالکه-

کالکچو:(کال-ک-چو)اسم- د مالوچو پنډر- د مالوچو د بوټے پرڼې-

کالکنړی:(کال-کن-ړی)اسم- واحد،جمع- مؤنث- (۱)کالکونړی- کارکونړې- کاکوړه- کالکونړے- (۲)کچه خټکے یا هندوانه- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ کاکوړه-

کالکوټے:(کال-کو-ټے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کاکوټے-

کالکوچ:(کال-کوچ)اسم صفت- (۱)پېچیده- (۲)مکرو فریب- (۳)دوکه خوړونه- چل- دوکه کېدنه- (۴)کنجلک- پېچ وار- کوږ وږ-کږکېچن- ګران-

کالکوچکه:(کال-کو-چ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ارغوشتکه- تاؤ- پېچ- ول- غوږدانګه- (۲)په یو کار کښې خنډ پیدا کونه-

کالکوچن:(کال-کو-چن)اسم صفت- کالکوچے- کالکوژن- (۱)کوږ وږ- کوږ راکوږ- (۲)فریبی- دوکه باز- (۳)سخا شوے- (۴)کوینګ- کوټلے- پېچ درپېچ- تاؤ راتاؤ- کږلېچ- کالکوچے-

کالکوچه:(کال-کو-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کالکوچکه-

کالکوچے:(کال-کو-چے)اسم صفت- وګورئ کالکوچن-

کالکوژن:(کال-کو-ژن)اسم صفت- کالکوچے- (۱)دوکه باز- ټګ- فریب کار-

کالکونړی:(کال-کون-ړی)اسم- واحد- مؤنث- مرغونی- مره غونی- کاکوړه- کالکونړے- کارکونړی- کارکونړے- پوچک-

کالکونړے:(کال-کون-ړے)اسم- واحد- مذکر- کالکنړے- یو بوټے چې د هندوانې په شان وی زړې ترخې دانې کوی- وګورئ کالکونړی-

کالکه:(کال-که)اسم- واحد- مؤنث- د پومبې غوزه- کالکا- د مالوچو غوزه- ټپوسے- د پنبې پلے-

کالکښ:(کال-کښ)اسم- واحد- مذکر- پنړا- پنړی- د ګلی پنړی پنړا-

کالکښ او اپړی:(کال-کښ-او-اپ-ړی)اسم مرکب- ګلی پنړه- شوتی پنړی- ړمبک- کاکی- کاکښکے- کاکشکے-

کالکی:(کال-کی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم بوټے چې د ګیاه په شان وی-

کالنے:(کا-له-نے)اسم صفت- کالیز- د کال- سالانه-

کالوخانے:(کا-لو-خا-نے)اسم- واحد- مذکر- د عزت کولو د پاره مېلمنو له د زیاتې ترکارئ د پاره یو غټ بناکه- رکېبی یا تالے- جمع کالو خانی-

کالوسر:(کا-لو-سر)اسم مرکب- ټول کال- ټول عمر- د کال دولس میاشتې-

کالوښته:(کا-لوښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- ګاټلی- پېټی- پنډ- جمع کالوښتې-

کاله:(کا-له)اسم- واحد- مؤنث- سبو- سبب-

کالهٔ:(کا-لهٔ)اسم- واحد- مذکر- کور- خونه-

کالی:(کا-لی)اسم- جمع- مذکر- (۱)جامې- لباس- پوشاک- (۲)وسله- (۳)د نانی اوزار- (۴)لوښی- (۵)د کالے جمع-

کالیز:(کا-لیز)اسم صفت- (۱)کالنے- سالانه- کالوسرے- (۲)د یو کال-

کالیزه:(کا-لی-زه)اسم- واحد- مؤنث- هغه سالانه پروګرام چې د اهمې واقعې یا د چا په یاد کښې نماځلے شی- جمع کالیزې-

کالی کودی:(کا-لی-کو-دی)اسم- جمع- مذکر- (۱)د کور سامان- اسباب- (۲)وسله- اسلحه-

کالین:(کا-لین)اسم- واحد- مذکر- د اُستکار مزدوری-

کالی:(کا-لی)اسم- واحد- مؤنث- کنده- کړی-

کالے:(کا-لے)اسم- واحد- مذکر- کالے پټرے- (۱)پسول- زېور- (۲)جامه- لباس- (۳)اسباب- سامان- متاع- جمع کالی-

کالے پټرے:(کا-لے-پټ-رے)اسم مرکب- وګورئ کالے- جمع کالی پټری-

کامبور:(کام-بور)اسم- مذکر- وګورئ کامبورے-

کامبورے:(کام-بو-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه د ټانټبو او شړشمو بې کاره پاڼې چې د سوزولو نه علاوه نور څهٔ کښې نهٔ پکارېږی- کامبور-

کامبېله:(کام-بې-له)اسم- واحد- مؤنث- یوه ونه چې حکیمی دارو ترې جوړولے شی- اَدس- کمبېله- کمبېله- کومبېله- نباتاتی نوم روټلیرا ټنکټوریا (ROTTLERA TINCTORIA)-

کامچه:(که-مهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- خمچه- وړه ګټه- کچه ګټه- خچه ګټه-

کامخور:(کام-خور)اسم- واحد- مذکر- یو قسم غټ کب چې واړهٔ کبان خوری-

کامران:(کام-ران)اسم صفت- غالب- کامیاب- خوش نصیب- بریالے- بختور- کامروا-

کامرانی:(کام-را-نی)اسم- واحد- مؤنث- کامیابی- خوش نصیبی- بریالی توب-

کامروا:(کام-ر-وا)اسم صفت- کامیاب- کامران-

کامره:(کام-ره)اسم- واحد- مؤنث- کېمره- هغه آله چې تصویرونه پرې جوړولے شی- (عامیانه)-

کامګار:(کام-ګار)اسم صفت- کامران- بامراد- کامیاب-

کامل:(کا-مل)اسم صفت- پوره- رسېدلے- مکمل- په هر لحاظ پوره-

کاملتوب:(کا-مل-توب)اسم- واحد- مذکر- مکمل کېدنه- پوره والے- کامل والے-

کاملوالے:(کا-مل-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کاملتوب-

کاملول:(کا-م-له-ول)مصدر متعدی- کمال ته رسول- تکمیلول-

کاملونکے:(کا-م-له-ون-کے)اسم فاعل- جمع کاملونکی- مؤنث کاملونکې- وګورئ کاملول-

کاملونه:(کا-م-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کاملول-

کاملېدل:(کا-م-لې-دل)مصدر- کمال ته رسېدل- تکمیلېدل-

کاملېدنه:(کا-م-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ کاملېدل-

کاملېدونکے:(کا-م-لې-دون-کے)اسم فاعل- جمع کاملېدونکي- مؤنث کاملېدونکې- وګورئ کاملېدل-

کاملېدهٔ:(کا-م-لې-دهٔ)حاصل مصدر - وګورئ کاملېدل-

کام ناکام:(کام-نا-کام)اسم مرکب- مجبوراً- پهٔ ناخوالې- خوامخوا-

کامیاب:(کام-یاب)اسم صفت- بریالے- غالب- خوش نصیبه- مقصد ته رسېدلے-

کامیابول:(کام-یا-به-ول)مصدر متعدی- بریالے کول- غالب کول- خپل هدف ته رسول- کامیاب کول-

کامیابولے:(کام-یا-به-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کامیابولی- مؤنث کامیابولې- وګورئ کامیابول-

کامیابون:(کام-یا-به-ون)حاصل مصدر - وګورئ کامیابول-

کامیابونکے:(کام-یا-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کامیابونکی- مؤنث کامیابونکې- وګورئ کامیابول-

کامیابونګ:(کام-یا-به-ونګ)حاصل مصدر - وګورئ کامیابول-

کامیابونه:(کام-یا-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر - وګورئ کامیابول-

کامیابي:(کام-یا-بي)اسم- واحد- مؤنث- مطلب پوره کېدنه- برے- کامرانی- بریالی توب-

کامیابېدل:(کام-یا-بې-دل)مصدر لازم- بریالے کېدل- غالب کېدل- برے موندل- فتح موندل-

کامیابېدلے:(کام-یا-بې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کامیابېدلی- مؤنث کامیابېدلې- وګورئ کامیابېدل-

کامیابېدن:(کام-یا-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کامیابېدل-

کامیابېدنګ:(کام-یا-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کامیابېدل-

کامیابېدنه:(کام-یا-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کامیابېدل-

کامیابېدونکے:(کام-یا-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کامیابېدونکی- مؤنث کامیابېدونکې- وګورئ کامیابېدل-

کامیابېدهٔ:(کام-یا-بې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کامیابېدل-

کان:(کان)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ معدنیاتو راوتو ځائې- (۲)یو دانه چې دَ اَس پهٔ حلق کښې راوځی- (۳)نل- نے- (۴)خاندان- پښت- پېړی- (۵)سرنګ- نقب- جمع کانونه-

کانا:(کا-نا)اسم صفت- واحد- مذکر- احمق- کم عقل-

کان پټی:(کان-په-ټی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ اَسپې دَ غوږونو بندولو پټی-

کانپور:(کان-پور)اسم- واحد- مذکر- دَ ښخو دَ غوږونو یو کالے-

کانتین:(کان-تین)اسم- واحد- مذکر- کینټین- دَ چایو هوټل- (افغانستان)-

کانټار:(کان-ټار)اسم- واحد- مذکر- زیړ رنګ لرونکې یو قسم چینډخه-

کانټه:(کان-ټه)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ ډکو یا تیلیو جوړه لویه جاروء جمع کانټې-

کانټی:(کان-ټی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کتاب جلد- (۲)دَ زین پټی- (۳)بغلی عصا- (۴)جُثه- وجود- قدو قامت- ډیل و ډول-

کانجر:(کان-جر)اسم صفت- چغر- هغه سړے چې ژر ژر سترګې رپوی یا رپیری- کانجو-

کانجړ:(کان-جړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سلی- لوړے- یو شان تیر چې دَ اُرمټ پهٔ دوو بوټکو باندې ایښودے شوے وی- چې نېغ پهٔ نېغ چکر لګوی- (۲- صفت)کوږ ووږ سړے- کانجړ-

کانجړ:(کان-جړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کانجړ- (دَ ارټ لرګے)-

کانجو:(کان-جو)اسم صفت- وګورئ کانجر-

کانجی غوس:(کان-جی-غوس)اسم- هغه ځائې یا احاطه چې پکښې لاوارثه ډنګر بندولے شی- (م- انګریزی)-

کاندل:(کان-دل)مصدر- کول- کړل-

کانده:(کان-ده)اسم- واحد- مؤنث- پسته- ورسته- آئنده- پائې- ګانده-

کاندی:(کان-دی)اسم- واحد- مؤنث- چمچه- کاشوغه

کاندې:(کان-دې)دَ کول مصدر نه فعل حال-

کاندے:(کان-دے)اسم- واحد- مذکر- هغه کوټه چې پکښې خلق غله جمع کوی-

کانډال:(کان-ډال)اسم- واحد- مذکر- (۱)غټه پیالی- کنډول- (۲)خاورین مات لوښے- جمع کانډالونه-

کانډوله:(کان-ډو-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ کچالو غُندې وېخ لرونکے یو قسم واښهٔ چې خلق يُې خوری-

کانډیاتے:(کانډ-یا-تے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوا مېښې چېلۍ وغېره دَ وړومبو دوه درې ورځو پئ- کنډ- وارګهٔ- اورګهٔ- جمع کانډیاتی-

کانډیال:(کانډ-یال)اسم- واحد- مذکر- بادبرک- خارسپېر- بوړبوړه- یو قسم بوټے چې دَ ټکولو نه پس ناجوړه غوایانو ته ورکولے شی-

کانډی:(کان-ډی)اسم- واحد- مؤنث- ماچس- دَ تیلیو ډبے-

کانفرس:(کان-فرنس)اسم- واحد- مذکر- جرګه- غُنډه- مجلس- جمعیت- (م- انګریزی)-

کانکر:(کانګ-کر)اسم- واحد/جمع- مذکر- کنکر- واړهٔ واړهٔ کانی-

کانکرت:(کان-کرت)اسم- واحد- مذکر- دَ باز دَ خاندان یو قسم ښکار کوُنکے مارغهٔ- باتور-

کانکړ:(کان-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- مړاوے شوے- پژمرده- وچ شوے- زمول-

کانګ:(کانګ)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کاڼا- پهٔ یوه سترګه ړوند- چمخور- یخان- (۲- اسم)پېچش-

کانګو:(کانګ-ګو)اسم- واحد- مذکر- کونګے- الو- بوم- یو قسم مارغهٔ-

زبر (غ-بهٔ-ره)، زورکے (شل)، پېښ (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکوڼ)، ه (ز-ړه)، ۀ (پو-بې-دهٔ)

کانګوره:(کانګ-ګو-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- تتله- نښتی ژبه-

کانګه:(کانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- کانګې- (۱)اُچ- رمه- ړپ- پېچش- دستونه- دَ نس خوږی یا ګېډې خوږ نه پس رمه او وینه- (۲)قے- باقی- ګرخون-

کانګه:(کانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- کونے- یوه حشره چې دَ ځاروو په غوږونو کښې وی او وینه ترې ځښی-

کانګه:(کانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کانګی-

کانګې:(کانګ-ګې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کانګه ۱-

کانګی:(کانګ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- دَ آواز راتمبېدنه- په غره یا ګنبد کښې دَ اواز بیرته راګرځېدنه یا دوباره اورېدنه- انګی- ازانګه-

کانون:(کا-نون)اسم- واحد- مذکر- نغرے- اَنغرے- اورغالے- دَ اور دَ بلولو خاص ځائ- (افغانستان)-

کانه:(کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- سرکنډے- یو قسم واښه-

کانه:(کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- قیصه- نقل- حکایت- (۲)کناره- (۳)ناشونې- (۴)هُنر- (۵)ناڅاپی پېښه- حادثه- آفت- تکلیف- رنځ- غم- (۶- صفت)احمق- کمعقل- (۷)سخا- خوسا- جمع کانې-

کانه وانه:(کا-نه-وا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اټال مټول- نکرې نکرې- انې بانې- اخوا دېخوا- (۲)عجیبه پېښه-

کانی:(کا-نی)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)دَ کان نه راوتے شے- معدنی- (۲)اصلی- بنیادی-

کانې:(کا-نې)اسم- جمع- مؤنث- دَ کانه ۲جمع- وګورئ کانه-

کانی:(کا-نی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پُړ- (۲)دَ غوږ سورے- (۳)دَ غوږ والی- (۴)دَ غشی څوکه-

کاڼ:(کاڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ بلوط دَ وَنې په رنګ یوه غرنیزه وَنه- (۲)بوزغلے-

کاڼ:(کاڼ)اسم- واحد- مذکر- درنګ- تروپ-

کاڼاو:(کا-ڼاو)اسم- مذکر- (۱)دَ لوهاری اوزار-

کاڼل:(کا-ڼل)مصدر- څهٔ کار کول- (متروک)-

کاڼوټه:(کا-ڼو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- ګیټی- ډبره-

کاڼوده:(کا-ڼو-ده)اسم- واحد- مؤنث (۱)مورے- (۲)کنباوه- (۳)دَ اَسونو یا ځاروو نوکه- جمع کاڼودې-

کاڼوکی:(کا-ڼو-کی)اسم- واحد- مؤنث- کړکی- وړه دروازه-

کاڼه:(کا-ڼه)اسم صفت- چغ سترګې- دَ یوې سترګې خاوند- کورسترګې-

کاڼه:(کا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- کالے- زېور- پسول- ګاڼه-

کاڼه:(کا-ڼه)اسم صفت- (۱)هغه څوک چې خبرې نهٔ شی اَورېدلے- (۲)کاڼے-

کاڼه:(کا-ڼه)اسم- بوګال- نرلوخ- یو قسم واښهٔ- نباتاتی نوم سیکچرم سیلیرے (SACCHARUM CILIARE)-

کاڼی بوټی:(کا-ڼی-بو-ټی)اسم- جمع- مذکر- هر څهٔ- ګډوډ- کائنات-

کاڼی ټک:(کا-ڼی-ټک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ کاڼو ټکولو مزدور- (۲)کاڼی کړپ- دَ ماشومانو یوه لوبه-

کاڼیز:(کا-ڼیز)اسم صفت- سخت- کلک- لهٔ کاڼو سره متعلق-

کاڼیزه:(کا-ڼی-زه)اسم صفت- مؤنث- کاڼیزه زمکه- دَ کاڼو ډکه-

کاڼی کړپ:(کا-ڼی-کړپ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ کاڼی ټک-

کاڼی کودی:(کا-ڼی-کو-دی)اسم- جمع- مذکر- کالی کودی- دَ کور سامان- اسباب- اسباب-

کاڼی کوړم:(کا-ڼی-کو-ړم)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ډېر ژور تالاؤ- (۲)هغه تالاؤ چې غاړې ئې په کاڼو پخې کړے شوی وی- (۳)بیخی ورک کېدنه-

کاڼین:(کا-ڼین)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کاڼو او تیږو زمکه- کاړ- (۲)دَ کاڼی سره تعلق لرونکے-

کاڼی:(کا-ڼی)اسم صفت- مؤنث- دَ کاڼی مؤنث- وګورئ کاڼے- ۲

کاڼے:(کا-ڼے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناغه- دَ پښتنو دَ یو دستور نامه- (۲)دَ وزن کولو (تللو) ډبره (کاڼے)-

کاڼے:(کا-ڼے)اسم صفت- واحد- مذکر- یو سترګے- دَ یوې سترګې خاوند- په یوه سترګه ړوند-

کاڼے:(کا-ڼے)اسم- واحد-مذکر- غرګے- (۱)ګاټے- غُټه ګټه- تیږه- ښوی ډبره- (۲- صفت)سخت-

کاڼے رګے:(کا-ڼے-ر-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)سخت- (۲)وران- ورانکارے-

کاواک:(کا-واک)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مینځ کښې خالی- (۲)سرګردان- (۳)پرېوتونکے- (۴)بې پروا-

کاواکه:(کا-وا-که)اسم- واحد- مؤنث- آواره- بې هوده- سرګردانه- ارتیاکه- جمع کاواکې-

کاوځی:(کاو-ځی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کوځی- کمځی- کونځی- دَ وېښتو چونټڅه- (۲)مالیمشت- مالوښت- پېژندنه-

کاودے:(کاو-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ کړوسی ځوئ- جمع کاودی-

کاوړ:(کا-وړ)اسم- واحد- مذکر- قهر- غصه- غضب- پرغذ- براس- دوګ- برچ- ګواښ-

کاوړېدل:(کا-وهٔ-ړې-دل)مصدر لازم- په غصه کښې راتلل- غصه کېدل- قهرېدل-

کاوړېدلے:(کا-وهٔ-ړې-ده-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کاوړېدلی- مؤنث کاوړېدلې- وګورئ کاوړېدل-

کاوړېدن:(کا-وهٔ-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کاوړېدل-

کاوړېدنګ:(کا-وهٔ-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کاوړېدل-

کاوړېدنه:(کا-وهٔ-ړې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ کاوړېدل-

کاوړېدونکے:(کا-وهٔ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع

ی (څی-رل)، ې (هې-ره-ول)، ئ (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کاوړېدونکې- مؤنث کاوړېدونکې- وګورئ کاوړېدل-
کاوړېدهٔ:(کا-وهٔ-ړي-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ کاوړېدل-
کاوړے:(کا-وهٔ-ړے)اسمِ صفت- (۱)غصه کونکے- قهرژن- (۲)سخت- کلک- شدید- ټينګ-
کاوش:(کا-وش)اسم- واحد- مذکر- تلاش- جستجو- کوشش- هڅه-
کاوکيو:(کاو-کيو)اسم مرکب- هله ګله- شور زوږ-
کاوو:(کا-وو)اسم- واحد- مذکر- کاوونه- څړه پاڼه- پاڼوو- کاهو- هغه مشهوره سبزی چې کچه خوړلے شي-
کاوونه:(کا-وو-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کاوو-
کاوه:(کا-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يو قسم بوټے- (۲)قاوه- قهوه- شنه چای- شين چے- شنې چای-
کاوهٔ:(کا-وهٔ)دَ کول مصدر نه ماضي استمراری-
کاوين:(کا-وين)اسم- (۱)جهيز- زلور- کابين- هغه سامان چې مور پلار يې وديدونکې جينۍ له کوی- (۲)مهر- (۲)دَ وادهٔ دَ ورځې پروړی-
کاه:(کاه)اسم- وچ واښهٔ- واښهٔ- خسنے-
کاه:(کاه)اسم- واحد- مذکر- خارښ- خارښت- کهه-
کاه دانه:(کاه-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- پله- بُوساړه-
کاه ربا:(کاه-ر-با)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اکربه (م- فارسی)-
کاهشته:(کا-هش-ته)اسم صفت- (۱)خارښتی- پمن- (۲)بدرنګ-
کاهښ:(کا-هښ)اسم- (۱)کمے- کمېدنه- (۲)تکليف-
کاهښت:(کا-هښت)اسم- (۱)خارښت- (۲)عبث- بې کاره- بې فائدې- (۲)تشويش- وسواس-
کاهکشان:(کاه-که-شان)اسم- مذکر- دلدل لاره- اسمان لاره- هغه ستوری چې پهٔ اسمان کښې دَ لارې پهٔ شان ښکاری- (م- فارسی)-
کاهل:(کا-هل)اسمِ صفت- سست- پهٔ کار کښې دلچسپی نهٔ اخستونکے- بې کاره- بې همته- (م- فارسی)-
کاهن:(کا-هن)اسم- واحد- مذکر- دَ غېبو پېشن ګوئی کونکے- غېب ګو- توريتی- جمع کاهنان- (م- عربی)-
کاهو:(کا-هو)اسم- واحد- مذکر- کاوو- يو سبزی چې کچه خوړے شي- پاڼو- کاوو-
کاهی:(کا-هی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کاهے-
کاهېدل:(کا-هې-دل)مصدر لازم- خارښتېدل- ګرېدل-
کاهېدن:(کا-هې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کاهېدل-
کاهېدونکے:(کا-هې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کاهېدل-
کاهېدونے:(کا-هې-دو-نے)اسم مفعول- وګورئ کاهېدل-
کاهېدهٔ:(کا-هې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کاهېدل-
کاهېرل:(کا-هې-رل)مصدر لازم- وګورئ کاهېدل-

کامے:(کا-مے)اسم- واحد- مذکر- کامی- دَ قلعه نه ګېر چاپېر خندق-
کانل:(کا-نل)اسم- واحد- مذکر- خاندان- ټبر- کول-
کائن:(کا-ئن)اسم- واحد- مذکر- موجود- حاضر- (م- عربی)-
کائنات:(کا-ئِ-نات)اسم- جمع- مخلوقات- موجودات- هر څهٔ چې پهٔ زمکه موجود دی-
کايه:(کا-يه)اسم- واحد- مؤنث- کانټی- جلد- جمع کايې-
کائی:(کا-ئی)اسم صفت- ژور- عميق-
کائے:(کا-ئے)اسم- واحد- مذکر- کئے- کهے- درمه- نباتاتی نوم سکچرم سپان ټېنيم (SACCHARUM SPONTANEUM)-
کب:(کَب)اسم- واحد- مذکر- (۱)مهے- ماهے- مئے- (۲)دَ يوې مياشتې نامه- جمع کبان- (افغانستان)-
کُب:(کُب)اسم- واحد- مذکر- قب- (۱)دَ اوښ غوئی وغېره دَ ملا هغه ځای چې موړه شان وی يعنی بهر راوتے وی- (۲)دَ بعضې انسان پهٔ ملا کښې راوتلے مهوکے-
کباب:(کَ-باب)اسم- واحد- مذکر- کباپ- (۱)پهٔ سيخ يا کړی کښې دَ اوړو از قيمې نه جوړ شوے ټيکالے- ورته- وريته- (۲)صفت- جلبل- ستی- جمع کبابونه- (م- فارسی)-
کبابول:(که-با-به-ول)مصدر متعدی- ستی کول- وريتول- جلبل کول-
کبابونه:(که-با-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کبابول-
کبابونکے:(که-با-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کبابول-
کبابه:(که-با-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ تورو مرچو پهٔ شان يو خوشبودار تخم چې ډېر تريخ وی او پهٔ دارو کښې هم پکاريږی- نباتاتی نوم پائيپر کوبيبه (PIPER CUBEBA)- (م- فارسی)-
کبابی:(که-با-بی)اسم صفت- واحد- مذکر- کباب پخونکے- هغه څوک چې کباب پخوی- (م- فارسی)-
کبابېدل:(که-با-بې-دل)مصدر لازم- وريتېدل- ستی کېدل- سوزېدل- تلېدل-
کبابېدنه:(که-با-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کبابېدل-
کبابېدونکے:(که-با-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کبابېدل-
کبابېدهٔ:(که-با-بې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کبابېدل-
کباپ:(که-باپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کباب-
کبابچنه:(که-باب-چهٔ-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ کباپچه-
کباړ:(که-باړ)اسم- واحد- مذکر- زړې پرزې، زاړهٔ مشينونه- مات ګډ ځيزونه يا اسباب وغېره-
کباړی:(که-با-ړی)اسم صفت- (۱)دَ کباړ- کباړ سره متعلق- (۲)کباړ خرڅونکے-
کبر:(کهٔ-بر)اسم- واحد- مذکر- (۱)غرور- تکبر- (۲)ناشکری- (۳)لوې والے- لوئی- (۴)سپين ږيرتوب-
کبرڅڼ:(کهٔ-بر-څڼ)اسم- واحد- مذکر- هغه مارغهٔ چې دَ خپلې لوې مښوکې

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(کِ-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ږو-بې-دهٔ)

پهٔ ذریعه لهٔ ونو چینجی راوباسی او خوری-

کبرداغ:(کهٔ-بر-داغ)اسم- هغه غوښه چې یو ځایْ قورمه کړے شی از بیا ورو ورو خوړے شی-

کبرژن:(کهٔ-بر-ژن)اسم صفت- واحد- مذکر- متکبر- مغرور- کبر کونکے-

کبرژنی:(کهٔ-بر-ژهٔ-نی)اسم- واحد- مؤنث- مغرورتیا- کبر کونه-

کبرغان:(که-بر-غان)اسم- دَ سبزی یو قسم-

کبرغان:(که-بر-غان)اسم- واحد- مذکر- یو غرنیز ځناور- کبرغے-

کبرغے:(که-بر-غے)اسم- واحد- مذکر- وګوره کبرغان-

کبریائی:(کب-ری-یا-ئی)اسم- مؤنث- لوئی- بزرګی- (م- عربی)-

کبریت:(کهٔ-بهٔ-ری-یت)اسم- دَ کبر کولو حالت- (م- عربی)-

کبړ:(کَ-بړ)اسم صفت- واحد- مذکر- کُب لرونکے- کُبے- قبے- شابوټے- هغه څوک چې ملا ئې راټیټه وی- کبړے- مؤنث کُبړی- (م- هندی)-

کبړ:(که-بړ)اسم- واحد- مذکر- کلک پړے چې اَس پرې تړلے شی- کپړ-

کُبړی:(کُب-ړی)اسم صفت- دَ کبړ مؤنث- وګوره کُبړ-

کبړے:(کُب-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګوره کُبړ-

کبک:(کَبک)اسم- واحد- مذکر- زرګ- یو ښائسته مارغهٔ- سائنسی نوم الیکټوری یس ګریکا (ALECTORIUS GRACCA)- (م- فارسی)-

کبل:(که-بل)اسم- واحد جمع- مذکر- یو قسم واښهٔ چې پهٔ زمکه خوریږی- عام طور سره ترې چمن لګولے شی- غوړو جوړولو کښې هم پکاروَلے شی- نباتاتی نوم سینوډن ډیکټی لین (CYNODON DACTYLAN)-

کبل:(که-بل)اسم- وجه- سبب- باعث- کبله-

کبلزار:(که-بل-زار)اسم صفت- هغه زمکه چې کبل پکښې وی- چمن-

کبله:(که-به-له)اسم- سببه- وجې- کبل-

کبل ما:(که-بل-ما)اسم- واحد جمع- مذکر- دَ کبل پهٔ ویخ کښې زړې وړې توری دانې چې پئ لری-

کبلی:(که-به-لی)اسم صفت- کبل لرونکے ځایْ- چمن-

کبلی:(کب-لی)اسم- واحد- مؤنث- بګی- تانګه- ټانګه- دَ سورلی هغه ګاډے چې آسپه ئې راکاږی-

کبلے:(کب-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ موسیٰ بچے- جمع کبلی-

کبلے:(کب-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو یو قسم بیماری-

کبند:(که-بند)اسم صفت- مست اَو دران اُوښ چې قابو کښې راوستے نهٔ شی-

کب نیونے:(کب-نی-وو-نے)اسم صفت- هغه سړے چې کبان نیسی- مچی مار- ماهی ګیر-

کبود:(که-بود)اسم- واحد- مذکر- نیلی- نیلګون- شین- آسمانی رنګ- (م- ترکی)-

کبودچه:(که-بود-چه)اسم- واحد- مذکر- یو قسم شین رنګ لرونکے دَ قره قلی ټوپۍ پوست- (پوستکے)-

کبوړے:(که-بو-ړے)اسم- واحد- مذکر- یخه شوې دَ ګړې شیره- (۲)وړوکے کب- جمع کبوړی-

کبیر:(که-بیر)اسم صفت- لوئ- بزرګ- زبرګ- مؤنث کبیره- (م- عربی)-

کبیره:(که-بی-ره)اسم صفت- مؤنث- دَ کبیر مؤنث- وګوره کبیر-

کبیره:(که-بی-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کاغذ یا څرمنې نه جوړه شوې پیمانه چې پېزار پرې برش کولے شی- (۲)دَ صغیره ضد- سخته (ګناه)- لویه (ګناه)-

کبی:(که-بی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)اخور- (۲)تبرسرے- دَ اس تبرسرے- (۳)هغه دانه چې اس ته پهٔ خلهٔ کښې اچولے شی او اس پرې قابو کولے شی-

کبی:(کُ-بی)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ کُبے مؤنث- وګوره کُبے-

کبے:(کُ-بے)اسم صفت- واحد- مذکر- شابوټے- کُب لرونکے- قُبے- جمع کُبی-

کبیسه:(که-بی-سه)اسم- واحد- مؤنث- هغه شمسی کال چې یوه ورځ پکښې زیاته وی- دَ ۳۶۶ ورځو کال-

کپ:(کپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لرزه- رپا- رپارے- (۲)دَ روټی نمړی- (۲)دَ څهٔ څیز هغه مقدار چې پهٔ غاښونو یو ځل پریکړے شی-

کپان:(کَ-پان)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ تلې دړه- دړ- (۲)غټه تله-

کپتان:(کپ-تان)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لوبغاړو مشر- (۲)دَ رجمټې مشر- دَ سمندری جهاز لوئ افسر- (م- انګریزی)-

کپتانی:(کپ-تا-نی)اسم- مؤنث- دَ کپتان عهده-

کپر:(کَ-پر)اسم صفت- ژوره زمکه- هغه زمکه چې هواره نهٔ وی- دَ کنډ سره یو ځایْ ونیلے شی-

کپر:(که-پر)اسم- واحد- مذکر- کوپړی- کپری- کپره-

کپرک:(کپ-رک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سیلاب راوړی خاوره چې زمکه شی- لهه- لېهه- (۲)دَ اُبو پهٔ سر یخ کنګل- دَ اُبو پهٔ مخ نازک یخ- (۳)لوړه- ژوره- ناهمواره زمکه یا سړک-

کپرمزے:(که-پر-مهٔ-زے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مزے-

کپره:(که-په-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګوره کپر- جمع کپرې-

کپری:(کَ-پری)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګوره کپر-

کپړ:(که-پړ)اسم- (۱)دَ کور لوښی لرګی- دَ لوښو پهٔ رنګ څیزونه- (۲)دَ غوښې بوټی-

کپړ:(که-پړ)اسم- واحد- مذکر- بربېدول- سازو- دَ کمند مضبوطه او اُوږده رسی-

کپړه:(کپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- رخت- تان- جامه- (م- هندی)-

کپړه چاڼ:(کپ-ړه-چاڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ چاڼولو نری او باریکه ټوټه- (۲)دَ کپړې (ټوکی) نه چاڼ شوے-

کپړی:(کپ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- کُشتی- پالوانی- پهلوانی-

کپړی:(کپ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- دَ دارو کوپی-

کپړے:(کَپ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ خاورین لوښی هغه ټوکړه چې کار ترې اخستے شي- (افغانستان)-

کپسول:(کپ-سول)اسم- واحد/جمع- کیپسول- کالتوسی ګولی- یو قسم دارو- (م- انګریزی)-

کپ کپ:(کَپ-کَپ)اسم مرکب- ټکړې ټکړې- ذره ذره- (کول مصدر)-

کپله:(کپ-له)اسم- واحد- مؤنث- نوړی- کپه- نمړی- جمع کپلې-

کپن:(که-پن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کفن-

کپنی:(کَپ-نی)اسم- واحد- مؤنث- کمپنی- دَ تجارت دَ سوداګرو ټولے-

کپنی:(کپ-نی)اسم- (۱)جلتی- بې آرامی- بې قراری- (۲)لهٔ یېره شوقه لړزېدنه- (۳)بادام- دَ بادام وَنه-

کپوت:(ک-پوت)اسم- واحد- مذکر- نالائقه خوئ- ناخلف-

کپورکچری:(کَ-پور-کچ-ری)اسم- نرکچور- یوه خوشبوداره جړه- زرشاد-

کپوره:(که-پو-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ کړ یا چیلی خټه چې ځنې خلق ئې یېر پهٔ شوق پخوی او خوری-

کپوکپو:(که-پو-که-پو)اسم مرکب- قپو قپو- پهٔ مله مله- غټې غټې نمړی خوړنه-

کپول:(که-په-ول)مصدر متعدی- پهٔ غلا تښتول-

کپولے:(که-په-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کپولی- مؤنث کپولې- وګورئ کپول-

کپون:(که-په-ون)حاصل مصدر- وګورئ کپول-

کپونکے:(که-په-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کپونکی- مؤنث کپونکې- وګورئ کپول-

کپونګ:(که-په-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کپول-

کپونه:(که-په-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کپول-

کپوهٔ:(که-په-وهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کپول-

کپه:(که-پهٔ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ګلونو شکری- (۲)دَ مېوې خرڅولو شکور-

کپه:(که-په)اسم- واحد- مؤنث- پکه- دَ دارو سفوف- جمع کپې-

کپه:(که-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چونبی- (۲)نومړی- نمړی- نوړی- (۳)کېږدی- تواره- (۴)خړی- خره- کوټه- دلی-

کپی:(که-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)یو قسم ځېلی- (۲)دَ ښناورو وربوز- (۳)پنډی-

کپیا:(کَپ-یا)صفت- (۱)قیمه- ټوټې ټوټې- ریچې ریچې- ذرې ذرې- (۲)ستړے ستومانه-

کپی چوټی:(که-پی-چو-ټی)اسم- (۱)تلهٔ راتلهٔ بندونه- تعلقات خرېدنه- خلاصونه- غځونه- ختمونه- بې باکه کونه- (۲)دَ ماشومانو پهٔ خپل مینځ کښې دَ تعلق پرېکړه-

کپی خلے:(که-پی-خُ-لے)صفت- واحد- مذکر- (۱)ارت خُلے- (۲)بې زبانه- بزدله- جمع کپی خلی-

کپېدل:(که-پې-دَل)مصدر لازم- لهٔ یخنی نه ړچېدل- رپېدل- رېږدېدل-

کپېدلے:(که-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کپېدلی- مؤنث کپېدلې- وګورئ کپېدل-

کپېدن:(که-پې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کپېدل-

کپېدنګ:(که-پې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کپېدل-

کپېدنه:(که-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کپېدل-

کپېدونکے:(که-پې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کپېدونکی- مؤنث کپېدونکې- وګورئ کپېدل-

کپېدهٔ:(که-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کپېدل-

کپېر:(کَ-پېر)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناکه- نهنګ- مګرمچ- (۲)غټ کَب-

کت:(کَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم دارو- (۲)یوه بیماری-

کت:(کَت)اسم- (۱)مینځ- مابېن- (۲)سم الفار- سپین زرنیخ- سمبلخار- (۳)کمبله- غالی- ټغر-

کُت:(کُت)اسم- واحد- مذکر- کُتی- قُتی- قتاړے- کندوړی- ږوغل- ږوغے- غار-

کت:(کَت)اسم- واحد- مذکر- ترخ- تخرګ-

کتاب:(کِ-تاب)اسم- واحد- مذکر- دَ چاپ شویو او لیکلو شویو پاڼو مجموعه- جمع کتابونه- (م- عربی)-

کتابت:(کِ-تا-بَت)اسم- واحد- مذکر- دَ کتاب دَ لیکلو کار- (م- فارسی)-

کتابچه:(کِ-تاب-چه)اسم- واحد- مؤنث- وړوکے کتاب- کتاب ګوټے- کاپی- دَ کتاب پهٔ څېر-

کتابخانه:(کِ-تاب-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- لائبریری- دَ کتابونو ځائې-

کتابدار:(کِ-تاب-دار)اسم- واحد- مذکر- کتابدارے- دَ کتابونو محافظ- لائبریرین-

کتابداری:(کِ-تاب-دا-ري)اسم- دَ لائبریرین کار-

کتابدارے:(کِ-تاب-دا-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کتابدار-

کتاب فروش:(کِ-تاب-فه-روش)اسم- واحد- مذکر- کتابونه خرڅونکے- (م- فارسی)-

کتاب ګوټے:(کِ-تاب-ګو-ټے)اسم تصغیر- وړوکے کتاب-

کتابه:(کِ-تا-به)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ غټ قلم پهٔ ټوکړه(ټوکر)لیکلے شوے خط-

کتابی:(کِ-تا-بي)اسم صفت- دَ کتاب سره متعلق-

کتاره:(که-تا-ره)تابع مهمل- دا لفظ دَ قیصې سره یو ځائې وئیلے شي- لکه قیصه کتاره- قصه- لویه خبره-

کتاری:(که-تا-ري)اسم- جمدر- جودر- جوندر- نباتاتی نوم کنول ویولس

اروینسس (CONVOLVULUS ARVENSIS)-

کتان:(که-تان)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم وریښمین ټوکے چې د سپوږمۍ د رڼا سره ټوټې ټوټې چوی- (۲)السی چې تېل ترې ایستلے شی (۲)یو قسم بوټے چې د هغې پاڼې په ابو کښې خوشتولے شی او د دغې مادې نه وریښمینه کپړه جوړولے شی-

کتانی:(که-تا-نی)اسم- د کتان سره متعلق- لهٔ کتانه جوړ-

کتب خانه:(کُ-تب-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- د کتابونو کمره- لائبریری- کتابخانه-

کتبه:(کت-به)اسم- واحد- مونث- پهٔ کاڼی لیکلے شوے عبارت چې د شناخت پهٔ غرض پهٔ قبرونو یا مکانونو لګولے شی-

کترک:(کت-رک)اسم- واحد- مذکر- یو کلالی لوښے-

کتروزرخه:(که-تر-زر-خه)اسم- اوربشه-

کتری:(کت-ری)اسم صفت- (۱)زرزری- (۲)نفرت کونکے- کترے- (۲)سخت-

کتری باران:(کت-ری-با-ران)اسم- د زنانو یو کالے-

کترے:(کت-رے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- کوکرے- د سپی بچے- کوترے-

کترینګ:(کت-ری-نګ)اسم صفت- واحد- مذکر- هوښیار- زیرک- چالاک- سپین سترګې- بې ادبه-

کترے:(کت- رے)اسم صفت- هغه سرے چې د نورو خلقو نه نفرت کوی- کتری-

کتغ:(که-تغ)اسم- واحد- مذکر- سالن- اینکولے- نګولے- پوروڼے- لاڼ-

کتغلے:(کت-غه-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه ځل یا لمسے چې د غوایانو پهٔ شا پهٔ ژمی کښې اچولے شی- جمع کتغلی-

کتک:(که-تک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کاتک- د هندی کال اوومه میاشت-

کتک:(که-تک)اسم- واحد- مذکر- غنم کره- ډېر غنم پېدا کوُنکې زمکه- هغه زمکه چې غنم پکښې ښهٔ کیږی-

کتکانے:(کت-کا-نے)اسم- واحد- مذکر- سنګرېزه- هغه ورُوکے خړ رنګے کاڼے چې اکثر پهٔ شګو او مقبرو کښې وی-

کت کبړی:(کت-که-به-ړی)اسم- واحد- مؤنث- د ملګانو یوه لوبه-

کت کت:(کت-کت)اسم صوت- د چرګې آواز- کټ کټ-

کتکے:(کت-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اونت- د ښارو لرے- جمع کتکی

کتکی:(کت-کی)اسم- مؤنث- پهٔ تېزه خندا- پرله پسې خندا-

کتل:(که-تل)مصدر- (۱)د لیدو د پاره سترګې اړول- کسل- کورل- (۲)انتظار کول- صبر کول- (۳)لټول- (۴)مطالعه کول-

کتلمه:(کت-له-مه)اسم- واحد- مؤنث- قتلمه- د مېده اوړو نری غوړه روټی-

کتله:(کُت-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د غرهٔ کمر- پاڼ-

کتلے:(که-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کتل-

کتلے:(کت-لے)اسم- واحد- مذکر- شمشتی- کشب- شکرتانے- کاتلے- کښو- کښوهٔ-

کتمخے:(کت-مهٔ-خے)اسم- واحد- مذکر- د مېزری پاڼو نه جوړه شوې کلکه ټوټه چې د کټې پهٔ مخ ګنډلے شی-

کتمیره:(کت-می-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم نقش چې پهٔ کمبله په سره ځنی (سوتلی) کولے شی-

کت مینه:(کت-می-نه)اسم- واحد- مؤنث- نخره- جمع کت مینې-

کتن:(که-تن)حاصل مصدر- وګورئ کتل-

کتنځے:(که-تن-ځے)اسم- واحد- مذکر- د کتو ځاې- د کتلو ځاې- جمع کتنځی- (افغانستان)-

کتندویه:(که-تن-دو-یه)اسم صفت- کتونکے- د کتل مصدر اسم صفت-

کتنګ:(که-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ کتل-

کتنه:(که-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کتل-

کتو:(که-تو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مرغی- جمع کتوان-

کتوبے:(که-تو-بے)اسم- واحد- مذکر- ریشتلے- د لوښی پهٔ وېخ کښې پاتې خیرے- جمع کتوبی-

کتولے:(که-تو-لے)اسم- واحد- مذکر- یوه لویه ټوکری چې خلق پکښې مېوې راوړی- د مېوو ټوکری-

کتون:(که-تون)اسم- واحد- مذکر- انتظار- د کتل مصدر نه اسم- وګورئ کتل-

کتونکے:(که-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کتونکی- مؤنث کتونکې- وګورئ کتل-

کته:(که-ته)اسم- واحد- مؤنث- د کپړې یا بوج وغیره نه جوړ نرم ځل چې د څناورو پهٔ شا د بار راوړلو پهٔ وخت اچولے شی- اسپاب-

کته:(که-ته)اسم صفت- مؤنث- د بالا ضد- ښکته- لاندې-

کته پته:(کهٔ-ته-پهٔ-ته)اسم- واحد- مؤنث- کرته پرته- فضول خبره- جمع کتې پتې-

کتیر:(که-تیر)اسم- واحد- مذکر- د پلوسې کنډ- د پلوسې چیر-

کتیره:(که-تی-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم سلېښدار دارو- نباتاتی نوم سلېرکولیا یورنس (SLERCULIA URENS)-

کتېدل:(کهٔ-تې-دل)مصدر لازم- (۱)د چرګې د خپلو بچو پهٔ یو مخصوص اواز سره راغنډول- (۲)فضول خبرې کول- غلی غلی او پرله پسې خندېدل-

کتېدن:(کهٔ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کتېدل-

کتېدنه:(کهٔ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کتېدل-

کتېدونکے:(کهٔ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کتېدل-

کتېدهٔ:(کهٔ-تې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ کتېدل-

کتی:(کُ-تی)اسم صفت- واحد جمع- مؤنث- کتے- کت-

کتے:(که-تے)اسم- واحد- مذکر- د پیو د پیمانه کولو لرګے-

کټ:(کټ)اسم- واحد- مذکر- د ځملاستو د پاره د ځلورو بازوګانو ځلورو

ئ (ځی-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

پېښو او بوټو نه بوټلے شوے- جمع کټونه-

کټ:(کَټ)اسمِ صوت- (۱)دَ چرګ دَ شړلو آواز- (۲)اسم- واحد- مذکر- ټوپ- راشه- رشه-

کټ:(کَټ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم رنګ چې له پوستکو جوړولے شی او چمیاران ئې څرمنو ته ورکوی- جمع کټونه-

کټ:(کَټ)لاحقه چې همېشه دَ غټ سره راځی- لکه غټ کټ-

کټا:(که-ټا)اسم- یو قسم خندا-

کټا:(که-ټا)اسمِ صفت- (۱)غټ پهلوان- (۲)هغه سړے چې سر ئې خرئیلے وی- جمع کټاګان-

کټاب:(که-ټاب)اسم- واحد- مذکر- کټاڼ- دَ ګنهون یو قسم- (افغانستان)-

کټار:(که-ټاڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کټاری- وګورئ کټاره ۱- (۲)وګورئ کټاره ۲-

کټار:(که-ټار)اسم- واحد- مذکر- چندرو- جندری- چیتی- چغی- دَ ماشومانو جینکو یوه لوبه-

کټار:(که-ټار)اسمِ صفت- (۱)ګرځېدلے- اوښتے- مرتد- (۲)ضدی- سخت زړے- سرکشه- مؤنث کټاره-

کټاره:(که-ټا-ره)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هغه غوا چې دَ لوشلو پهٔ وخت کښې دوېم سړے خانته نهٔ پرېږدی- جمع کټارې-

کټاره:(که-ټا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ توری په شان یو قسم وړه اسلحه- کټار- کتاری-

کټاره:(که-ټا-ره)اسم- واحد- مؤنث- جنګله- جالکی- اټۍ- اخی- چچه- جمع کټارې-

کټارېدل:(که-ټا-رې-دَل)مصدرِ لازم- سرکش کېدل- بدعمله کېدل- بې لارې کېدل-

کټارېدن:(که-ټا-رې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کټارېدل-

کټارېدنه:(که-ټا-رې-دَه-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کټارېدل-

کټارېدونکے:(که-ټا-رې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کټارېدل-

کټارېدهٔ:(که-ټا-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کټارېدل-

کټاری:(که-ټا-رې)اسم- واحد- مؤنث- خنجر- چاړهٔ- تېره چاړهٔ- وګورئ کټاره ۲-

کټالی:(که-ټا-لی)اسم- واحد- مؤنث- هغه خاورینه کټوی چې زرګران پکښې زر ویلی کوی- کوټالی- کوټولی-

کټاڼ:(که-ټاڼ)اسم- واحد- مذکر- دَ ګنهون یو قسم- کټاب-

کټبان:(کَټ-بان)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې دَ کټ بوټلو کار کوی- کټ وان-

کټ بوزے:(کَټ-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوزبند- کټ پوز- (۲)برستن- تولائی- (افغانستان)-

کټبیل:(کَټ-بیل)اسم- واحد- مذکر- جز- حصه-

کټ پړے:(کَټ-پهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- هغه پړے چې دَ کټ دَ لنګې او دَ پیاړمې کار ترې اخستے شی-

کټپیش:(کَټ-پیش)اسم- واحد- مذکر- کټه پیش- لوړکے- تینګړی-

کټپوز:(کَټ-پوز)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوزبند- کټبوزے- دَ خلې هغه کوړے چې دَ څناور اوربوز پرې دَ خوراک نه دَ منع کولو دَ پاره تړلے شی- (۲)تولائی- برستن- (افغانستان)-

کټرکے:(کَ-ټر-کے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- کوټرکے- کوچے- بڼ خرهٔ بچے- جمع کټرکی-

کټسه:(کَټ-سه)اسم- واحد- مؤنث- کُچ-

کټ کټ:(کَټ-کَټ)اسمِ صوت- دَ خندا کولو آواز- پهٔ زوره خندا- پهٔ کړس کړس خندا-

کټ کټکے:(کَټ-کَټ-کے)اسم- واحد- مذکر- کټ پوزے- دَ کور مال اسباب- جمع کټ کټکی-

کټ کوټ:(کَټ-کوټ)اسم- کټ کټانی- کمے زیاتے- یو څیز نه څهٔ کمونه زیاتونه- پهٔ یو لیکلی کاغذ کښې تصیح کونه-

کټ کوټ کېدل:(کَټ-کوټ-کې-دَل)محاوره- (۱)خوشحالېدل- (۲)حېرانېدل-

کټ کول:(کَټ-که-وَل)مصدر- پرېکول- بندول- قطع کول- (۲)مخه راګرځول-

کټکی:(کَټ-کی)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ تېزه خندا- خرتا- دَ خندلو آواز-

کټ کېدل:(کَټ-کې-دَل)مصدر- پرېکېدل- بندېدل- پرېکړے کېدل-

کټکے:(کَټ-کے)اسم- واحد- مذکر- سټول-

کټکے:(کَټ-کے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- وړوکے کټ- کټکے- جمع کټکی-

کټکے:(کَټ-کے)اسم- واحد- مذکر- خربق- یو بوټے چې پهٔ غرونو کښې کیږی-

کټکے:(کَټ-کے)اسمِ تصغیر- وګورئ کټکے-

کټکے:(کَټ-کے)اسم- واحد- مذکر- وړدې پاڼې او لنډ ډنډر لرونکے دَ پیاز پهٔ شان بوټے چې سوربخن ګلونه لری او خوند ئې تریخ وی او عام طور سره پهٔ غرونو کښې زرغنېږی-

کټل:(کَ-ټَل)اسم- (۱)توکل- (۲)دَ یو مېوه دار بوټی نوم-

کټل:(کهٔ-ټَل)مصدر- دَ چرګانو شړل- شې کول-

کټماله:(کَټ-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ ښځو دَ غاړې یو پسول- جمع کټمالې-

کټ مټ:(کَټ-مَټ)متعلق فعل- مُو به مُو- مم دغه شان- بعینه-

کټمل:(کَټ-مل)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)هغه اُسپنه چې قصاب پرې چاړهٔ تېروی- (۲)منګې- منګوړه-

کټمیر:(کَټ-میر)اسم- واحد- مذکر- دَ قبائیلو یو دستور چې دَ اختر نمانځلو دَ پاره پهٔ غر باندې اور بلوی-

کټمیره:(کَټ-می-ره)اسم- واحد- مؤنث- غټه چاړهٔ- غټ چاقو-

کټمیرے:(کټ-می-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کونترې هغه بچے چې بازی اُړول یې زده نهٔ وی- د کوترې بچے چې وزرې یې لا نهٔ وی کړی- (۲)فاختکه- قمری-

کټمېرے:(که-ټه-مې-رے)اسم صفت- کټه مېرے- بې مینې- خبره نهٔ منونکے-

کټنی:(کټ-نی)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دلال گره- دلال ماره- مکاره- (۲)پهٔ دوکه یا چل ول جینکی د کورونو نه ایستونکې ښځه-

کټو:(که-ټو)اسم- واحد- مذکر- غټه چاټی- مټکا- جمع کټوان-

کټوټ:(کټ-وټ)اسم صفت- کړوډ-

کټوټکے:(که-ټوټ-کے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ کورونو کښې د کپړې نه جوړه شوې خانکو-

کټوټی:(که-ټو-ټی)اسم تصغیر- کټوټی- وړوکې کټوی- د ماشومانو د لوبو وړه کټوی-

کټوټی:(که-ټو-ټی)اسم تصغیر- کټونی- کټوټی- وړه د خاورو کټوی-

کټوټے:(که-ټو-ټے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وړوکے ډبے- کچونے دبلے- پیچونے دبلے- ډولکی-

کټور:(که-ټور)اسم صفت- دَ ښځې تابع- د ښځې مرید- لهٔ ښځې ویربدونکے-

کټورکے:(که-ټور-کے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وګورئ کټورے-

کټوروټے:(که-ټو-رو-ټے)اسم تصغیر- کټورکے- سینګړے- وړوکے کټورے- وړوکے کنډولے- دَ اُبو څښلو وړوکے لوښے-

کټورے:(که-ټو-رے)اسم- واحد- مذکر- جرمنے- دَ اُبو څښلو فلزی لوښے- کټوروټے- جمع کټوری-

کټوښے:(که-ټو-ښے)اسم- واحد- مذکر- دَ خټو دَ نغری پښه-

کټول:(که-ټه-ول)مصدر- (۱)حرکت ورکول- خوځول- (۲)راپاړول- راتورول-

کټوله:(که-ټو-له)اسم- واحد- مؤنث- پړلی- چوپان-

کټولے:(که-ټه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کټولی- مؤنث کټولې- وګورئ کټول-

کټون:(که-ټه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کټول-

کټونکے:(که-ټه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کټول-

کټونګ:(که-ټه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کټول-

کټونه:(که-ټه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کټول-

کټوه:(کټ-وه)اسم- واحد- مؤنث- قرقره- د پټکی نیغه شمله-

کټوه:(که-ټۀ-وه)اسم- واحد- مؤنث- د خاورو کټوی- کټوی- جمع کټوې-

کټوۀ:(که-ټه-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ کټول-

کټوی:(کټ-وی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لهٔ خاورو جوړ د پخلی لوښے- کټوه-

کټوی څټ:(کټ-وی-څټ)اسم صفت- تالی څټ- هغه څوک چې کټوی څټی- دَ بل خوراک ته ناست-

کټه:(که-ټه)اسم- واحد- مذکر- یو ښکرونکے مارغهٔ- باز- کټه باز- جره-

کټهار:(که-ټه-هار)اسم صوت- دَ زرکو اوازونه-

کټه باز:(که-ټه-باز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کټه-

کټه بونګ:(که-ټه-بونګ)اسم- واحد- مذکر- باټا چیندخ- کابلے چیندخ- غټ چیندخ-

کټه پور:(که-ټه-پور)اسم- واحد- مذکر- لوئ برج-

کټه پیش:(که-ټه-پیش)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځنګلی بلا- بلا- (۲)تینګړی- ترینګلی- لوړکے- کټه پور- کټپیش- کړیش- دَ مسواکې ګتې پهٔ ذریعه څوک پهٔ تندی وهنه-

کټه چرګ:(که-ټه-چرګ)اسم صفت- واحد- مذکر- غټ او مضبوط چرګ-

کټه چرګه:(ک-ټه-چر-که)اسم صفت- کړکه چرګه- هغه چرګه چې اګی یې بس کړې وی-

کټه سونکے:(که-ټه-سون-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- غټه پوزه لرونکے- جمع کټه سونکی-

کټه ګته:(ک-ټه-ګ-ته)اسم- واحد- مؤنث- غټه ګته- دَ لاس یا پښې تر ټولو پېړه خو لنډه شان ګته-

کټه کوری:(که-ټه-کو-ری)اسم- واحد- مؤنث- کټه کوری- (۱)پله- دسته- طبقه- (۲)وېش- هغه وېش چې تصنیف کښې استعمالیږی-

کټه لک:(که-ټه-لک)اسم- خوړندی- کور-

کټه مخ:(که-ټه-مخ)اسم صفت- واحد- مذکر- غټ مخ-

کټه میر:(که-ټه-میر)اسم صفت- واحد- مذکر- بې محبته- بل سره تعلق نهٔ ساتونکے- نامهربان- کټه میرے-

کټه میرے:(که-ټه-می-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ کټه میر-

کټیر:(که-ټیر)اسم- واحد- مذکر- بلندره- اشر-

کټیره:(که-ټی-ره)اسم- ټوکیه- مړکپ- ساتوال- ساطور- ساتول-

کټیک:(که-ټیک)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ څرمنې رنګ کونکے- دباغ- کټیکے- جمع کټیکان-

کټې:(که-ټې)اسم صوت- دَ کټې یا کټی دَ شړلو آواز-

کټېری:(که-ټې-ری)اسم- واحد- جمع- مؤنث- ارکاره- مرکاره- کړے- کړمے-

کټېل:(که-ټې-یل)مصدر- دَ قینچې پهٔ ذریعه دَ ونې نری څانګې یا واښهٔ پرېکول-

کټېلے:(که-ټې-یهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کټېلی- مؤنث کټېلې- وګورئ کټېل-

کټېن:(که-ټې-ین)حاصل مصدر- وګورئ کټېل-

کټېنګ:(که-ټې-ینګ)حاصل مصدر- وګورئ کټېل-

کټېنه:(که-ټې-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کټېل-

کټېونکے:(که-ټې-یون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کټېونکی- مؤنث کټېونکې- وګورئ کټېل-

کټی:(که-ټی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کټوی- کټوه- (۲)انړی- (۳)د کټی

ی" (ښې-رل)، ې"(هې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

مؤنث- دَ مېښې ښځینه بچے-

کټے:(که-ټے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مېښې بچے- (۲)هغه وُچ واښهٔ چې دَ اوښانو دَ پاره ذخیره کولے شي- (۳)دَ رباب غټ تار- جمع کټي/کټیان-

کټے:(که-ټے)اسم- واحد- مذکر- کونډی- پېمانه- کاسه- پلی- هغه لوښے چې پې پرې پېمانه کولے شي- جمع کټي-

کټے:(که-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ چڼو بوس- جمع کټي-

کټے:(که-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- غټ- مضبوط- جمع کټي-

کثافت:(که-ثا-فت)اسم- واحد- مذکر- (۱)مضبوط والے- غټوالے- (۲)مېل- ګندګی- چټلي- ناپاکی-

کثرت:(کَث-رت)اسم- واحد- مذکر- زیاتوالے- ډېروالے-

کثیر:(کَ-ثیر)اسم صفت- ډېر- ډېر زیات-

کثیف:(کَ-ثیف)اسم صفت- ګنده- ناپاک- کثافت لرونکے-

کثیفول:(که-ثی-فه-وَل)مصدر- (۱)پنډول- پېړول- (۲)ګنډول- (۳)ټینګول- (۴)مردارول- (۵)خیرنول-

کثیفېدل:(کِه-ثی-فې-دل)مصدر- (۱)پنډېدل- پېړېدل- (۲)خیرنېدل- (۳)ګنډېدل- (۴)ټینګېدل- (۵)مردارېدل-

کج:(کَج)اسم صفت- واحد- مذکر- کوږ ووږ- خَم- دَ نېغ ضد- (م- فارسی)-

کجات:(کُ-جاتَ)اسم صفت- واحد- مذکر- بداصل- کمینه- کجال- (م- فارسی)-

کجال:(کُ-جالَ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ کجات- (م- فارسی)-

کجاوه:(که-جا-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پالکی- ډولکی- (۲)دَ مېوې وړلو لویه بوره چې لهٔ میزرو جوړه وي-

کجاوې:(کُ-جا-وې)اسم- جمع- بې مطلبه خبرې- فضول خبرې-

کجانی:(کُ-جا-نی)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- بکواسی- اُوتې بوتې ویونکے- فضول خبرې کونکے-

کج بېرے:(کَج-بې-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ زخم دَ پاره پکارونکے یو قسم بوټے- پرمرپاڼے- ګزک پاڼه- زخم بوټے- زخم حیات- نباتاتی نوم سکسی فرېګا لیګولېټا (SAXIFRAGA LIGULATA)-

کج خلقی:(کَج-خُل-قی)اسم- واحد- مؤنث- بداخلاقی- بدمزاجی- دَ خوئ سخت--

کج رفتار:(کَج-رِف-تار)صفت- وګورئ کجرو-

کجرو:(کَج-رو)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)پهٔ کږه لاره تلونکے- کوږ ووږ تلونکے- (۲)ظالم- ناانصاف-

کجک:(که-جَک)اسم- واحد/جمع- مذکر- ف(۱)دَ ښځو پهٔ تندی کاږهٔ واږهٔ ویښتهٔ- (۲)دَ ایلو دَ لکی ویښتهٔ- (۳)دَ ټوپک سپے- (۴)پسینه بادرنګ- (۵)منحنی لرګے چې دَ ژرندې پل پکښې ګرځي-

کجکل:(کَج-کَل)اسم صفت- واحد- مذکر- فالج زده- هغه سړے چې دَ ګوزن لهٔ مرضه کوږ ووږ وي- ګوزنی- کجے-

کجکلاه:(کَج-کُ-لاه)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کوږ دستار پهٔ سر لرونکے- کږه کوله پهٔ سر تړونکے- خان ښیونکے- (۲)بادشاه- معشوق-

کجکول:(کَج-کولَ)اسم- واحد- مذکر- تور رنګ لرونکے دَ فقیرانو دَ چړ غښتو لوښے- دَ خېر غښتو لوښے- کچکول- کشکول- کجکولونه-

کجکے:(که-جه-کے)اسم- واحد- مذکر- تُول کجکے- یوه وړه ښائسته مرغۍ- جمع کجکي-

کجکے:(کَج-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژامه- ژامنه- کرغښے- دَ ژامنې وروستے مړوکے- (۲)وړوکے حوض- سړوبے- وړه چینه-

کج ګل:(کَج-ګُل)اسم- واحد- مذکر- دَ تور رنګ لرونکے یو ګل-

کجل:(کَه-جَل)اسم- واحد/جمع- مذکر- کاجل- (۱)رانجهٔ چې پهٔ کُچو کښې کړ کړے شي او سترګې پرې تورولے شي- (۲)لوګے-

کجلوله:(کَج-لو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پېش قوضه- خنجر- (۲)چاړهٔ- دَ غوښې پرې کولو چاړهٔ-

کج لېچ:(کَج-لېچ)اسم صفت- کوږ ووږ- کنده- ژوره لاره- کږلېچ-

کجلې سترګې:(که-جه-لې-ستَر-ګې)اسم صفت- جمع- مؤنث- مستې سکاڼې سترګې- تورې سترګې- رانجهٔ کړې سترګې-

کج ماله:(کَج-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- غاښور- جمع کجمالې-

کجن:(که-جَن)اسم- واحد- مذکر- بړستن- لحاف- نیالی- نالی- تلتک-

کجور:(که-جور)اسم- واحد- مذکر- (۱)خجور- خجوره- کجوره- (۲)دَ جوارو یو قسم-

کجوره:(که-جو-ره)اسم- واحد- مؤنث- یوه مشهوره وَنه او دَ هغې مېوه- جمع کجورې- نباتاتی نوم فېنکس ډېکټېلیفرا اېل (PHOENIX DACTYLIFERA-L)- (م- هندی)-

کجه:(که-جه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- دَ پینځو کالو غوا یا غوئے-

کجی:(که-جی)اسم- واحد- مؤنث- کاجی- (۱)نامردی- پهٔ لوبه کښې ټګی- (۲)جنغوزی- خنغوزی- (۳)کوږوالے- ناهمواری-

کجیر:(که-جیر)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو غټ غرنیز مارغهٔ- (۲)خېلی- برغټے- کجیران- یو قسم غټه دانه چې دَ غاړې یا ترخ لاندې راخیژی- (۳)صفت- غټ او ښائسته سړے- جمع کجیران-

کجیران:(که-جی-ران)اسم- وګورئ دَ کجیر دوېمه معنی-

کجیرتوب:(که-جیر-توب)اسم- واحد- مذکر- ښادمنی- بخره منی- ښاغلتیا- نېک مرغی-

کجیم:(که-جیم)اسم- واحد- مذکر- دَ اَس زغره-

کجی:(که-جې)اسم صفت- واحد جمع- مونث- دَ کجی مؤنث- وګورئ کجے-

کجے:(که-جے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې پهٔ پښو کښې ئې کوږوالے وي- کوږ کینړ- ګډ- (۲)یو قسم دَ شیراز کونتر- (۳)وګورئ کجکل-

کخړ:(کَ-خړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لحاف- نولانی- تلنی- تولیا- تلتکه-

(۲)پهٔ نيم سر پک- نيم پک جمع کخړان-

کخلي:(که-خهٔ-لي)اسم- جمع- مؤنث- خس و خشاک- بې کاره څيزونه- خزلې- خځلې-

کخڼ:(که-خڼ)اسم- واحد- مذکر- شيرک- تلتک- برستنه- برستن- نالى- نيالى- کنځر-

کڅ:(کڅ)اسم صفت- واحد- مذکر- کڅه- وړوکے- چيت- چې غټ پټ نهٔ وى- کڅوني-

کڅ:(کڅ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سيند پهٔ غاړه هواره دَ کروندې زمکه- کڅ- کڅے- (۲)پهٔ پټى کښې هغه ځاے چې سخت وى او زرغُنه شوٗ نهٔ کوى-

کڅ:(کڅ)اسم- واحد- مذکر- وريښمين تار چې دَ ستڼو نه جوړولے شي-

کڅ:(کڅ)اسم- واحد- مذکر- ناپ- پيمائش- اندازه- ميچ- مقدار- (کول/کېدل مصدرونه)-

کڅ:(کڅ)اسم صفت- پمن- کچڼ- بدشکله- دَ خارښ مريض-

کڅ:(کڅ)اسم صفت- عېب- نقص- خامى-

کڅ:(کڅ)اسم- جمع- مذکر- دَ شُملو نه وېستلے شوى غوړ- کچه غوړى-

کچاړه:(که-چا-ړه)اسم صفت- واحد- مذکر- کوړمه- جمع کچاړې-

کچ اغزے:(کچ-اَغ-زے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ازغى لرونکے بوټے-

کچالو:(که-چا-لو)اسم- واحد- مذکر- دَ الو دَ خاندان يوه سبزى- نباتاتى نوم ارم کولوکېشيا (ARUM COLOCASIA)-

کچبيز:(کچ-بيز)اسم- واحد- مذکر- تامبوزے- تمبوزک- تربوزک-

کچر:(که-چړ)اسم- واحد/جمع- مذکر- قچر- خچر- دَ اسپې او خر پهٔ جنسى توګه له يو ځاے کېدو پهٔ وجه پيدا شوے بچے- (۲)صفت- بدکاره- بدعمله-

کچرتوب:(که-چړ-توب)اسم- کچرى- دَ کچر جوړېدو حالت-

کچره:(کچ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ کچرى ۲- (۲)غاتره- استره- هغه ذره چې دَ موټر يا موټرسائيکل پهٔ پلګ کښې ونښلى- جمع کچرې-

کچره:(که-چهٔ-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ کچر مؤنث- وګورئ کچر-

کچرى:(که-چهٔ-رى)اسم- مؤنث- (۱)بدعملى- بدکارى- شرارت- (۲)ټوقه- مسخره-

کچرى:(که-چه-رى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- عدالت چې دَ مقدمو فېصلې پکښې کيږى- (م- هندى کچهرى)-

کچرى:(کچ-رى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کچه خټکے يا ايندوانه- کچره-

کچړه:(که-چهٔ-ړه)اسم- دَ مستى پهٔ حالت کښې دَ زرک يا زرکې آواز- جمع کچړې-

کچ سترکے:(کچ-ستر-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ وړو سترګو خاوند-

کچک:(که-چک)اسم- واحد/جمع- مذکر- کجک- پهٔ تندى کاږهٔ واړهٔ وېښتهٔ-

کچکاسه:(کچ-کا-سه)اسم- واحد- مؤنث- هغه څمڅى چې مائع پرې دَ يو لوښى نه بل لوښى ته پهٔ اندازه اچولے شي-

کچکاله:(کچ-کا-له)اسم- واحد- مؤنث- مات شوے لوئ خاورين لوښے-

کچ کچ:(کچ-کچ)اسم صوت- تُو تُو- دَ سپى دَ راغښتلو آواز-

کچ کچول:(کچ-که-چول)اسم- دَ کور دَ استعمال لوښى-

کچکول:(کچ-کول)اسم- واحد- مذکر- کشکول- وګورئ کجکول-

کچکولک:(کچ-کو-لک)اسم- واحد- مذکر- دَ بادامو، پستې وغېره پوستکے- کچکوله-

کچکوله:(کچ-کو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کچکولک-

کچکړ:(کچ-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- اندازه کونکے- ناپ کونکے- کچ کونکے- مؤنث کچکړه- جمع کچکړان-

کچل:(کَ-چل)اسم صفت- واحد- مذکر- کچے- دَ کړو وړو پښو لرونکے- کوږ پښے- کجے- مؤنث کچله- جمع کچلې-

کچلمه:(کچ-له-مه)اسم- واحد- مؤنث- خولخوږى- تشلمه- ريشلمه- دَ اورو يو قسم بيمارى چې دَ خولې نه پکښې بدبوئى خى- جمع کچلمې-

کچلين:(کچ-لين)اسم- واحد- مذکر- ارمغان- تحفه- سوغات-

کچماچ:(کچ-ماچ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کچماچو-

کچماچو:(کچ-ما-چو)اسم- واحد- مذکر- يو قسم سبزى- يو قسم ساګ- کرماچو- کاچ ماچ- نباتاتى نوم سولېنم انډيکم (SOLANUM INDICUM)-

کچ مېچ:(کچ-مېچ)اسم- واحد- مذکر- کچ کونه- ناپ تول- اندازه کونه- دَ زمکې کچ کونه-

کچنار:(کچ-نار)اسم- واحد- مذکر- کچنال- کوليار- يوه وُنه او دَ هغې دَ غوټو نوم چې دَ پخولو پهٔ کار راځى- نباتاتى نوم بوهينيا ويرى ګاټا (BOUHINIA VARIE GATA)-

کچنال:(کچ-نال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کچنار-

کچندے:(که-چن-دے)اسم- واحد- مذکر- بچے- وړوکے- جمع کچندى-

کچندے:(کَ-چن-دے)اسم صفت- بې وخته- بې ټانګه- نيمه خوا- نيمګړے-

کچندے مرغے:(که-چن-دے-مَر-غے)اسم- واحد- مذکر- يوه وړه شان مرغۍ چې دَ دېوال پهٔ سوړو کښې وُسيږى-

کچنوټے:(کچ-نو-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- ماشوم- وړوکے- کُچنے- جمع کچنوټى-

کچنه ګټه:(کچ-نه-ګ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- خچه ګټه- پلوى- دَ لاس يا پښو پهٔ ګټو کښې دَ ټولو نه وړه ګټه- جمع کچنې ګټې-

کچنى:(کچ-نى)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)ګډېدونکې- (۲)بدکاره ښځه- کاسيره- فحاشه ښځه- لولى- کنجرى- (م- هندى)-

کچنے:(کچ-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ کچنوټے- جمع کُچنى/کچنيان-

کچوالے:(کچ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)مېچ- اندازه- اندازه کونه- (۲)دَ زمکې سختوالے-

کچوت:(که-چوت)اسم صفت- واحد- مذکر- شوم- کنجوس- بخيل-

ئ (ښى-رل)، ې (هې-ره-ول)، ى (پيا-لى)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

پست فطرت- ممسک-

کچوتی:(که-چو-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناکجاتوالی- (۲)کنجوسی- بخیلی- شومتیا-

کچوتے:(که-چو-تے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ماشوم- وړوکے- جمع کچوتي- مؤنث کچوتې-

کچور:(که-چور)اسم- واحد- مذکر- کولمه- کولمه توی-

کچوره:(که-چو-ره)اسم- واحد- مؤنث- کڅوړه- جمع کچورې-

کچوری:(که-چو-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- پوښې- پورې- حلوا پوښې- روغنی- یو قسم پسته روغني روټې-

کچوکے:(که-چو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- کچوکانے- دَ وادهٔ زلمے- وديزن- ودګينے- شاوولهٔ- شاوهٔ- زوم-

کچول:(که-چه-ول)مصدر- پيمائش کول- اندازه کول- کچ کول-

کچول:(که-چول)اسم- واحد- مذکر- چيت شوے لوښے- کروپ لوښے- چيت پيت لوښے-

کچوله:(که-چو-له)اسم صفت- مؤنث- کچولا- کچولی- لښتينکه- چغره- سپين سترګې- بې لحاظه- جمع کچولې-

کچوله:(که-چو-له)اسم- مؤنث- يو قسم وَنه او دَ هغې تخم چې بعضو بيمارو کښې پکارولے شي- (افغانستان)-

کچونه:(که-چه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کچول-

کچونے:(که-چو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- کوچنے- وړوکے- ماشوم- جمع کچوني- مؤنث کچونې-

کچه:(که-چه)اسم صفت- (۱)دَ پوخ ضد- هغه شے چې پوخ شوے نهٔ وي- (۲)کمينه- ناکس- بداصل- (۳)شرمنده- (۴)بدل- (۵)بېکاره- ناقص- چې اصل نهٔ وي-

کچه:(کهٔ-چه)اسم صوت- کچې- دَ بزې دَ شړلو اواز- اچه-

کچه:(کهٔ-چه)اسم صفت- دَ کچ مؤنث وړه- وړوکې- خچه-

کچه اړه:(که-چه-ا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ګډه چې واړهٔ واړهٔ غوږونه يې وي او لم يا لکۍ يې هم وړه وي-

کچه پاڅ:(که-چه-پاڅ)اسم- دَ رفتار دَ پاره يو طنزيه توريے-

کچه پيکه:(که-چه-يی-که)اسم صفت- شرمنده- شرمېدلے- وارخطا- پرېشانه- کچه-

کچه توب:(که-چه-توب)اسم- (۱)خام والے- اوم والے- (۲)شرمندګی- پيکه توب- (۳)کم اصلي- کمينګی-

کچه عمره:(که-چه-عم-ره)اسم صفت- واحد- مذکر- نابالغه- دَ کچه عمر- ملک- دَ لږ عمر-

کچه عمری:(که-چه-عم-ری)اسم- مؤنث- نابالغتوب- وړوکوالے- ملکوالے- ملکوانه-

کچه غرمه:(که-چه-غر-مه)اسم- واحد- مؤنث- چې پوره غرمه لا نهٔ وي- برېخر- بلبخر- تنکی غرمه- تنکے څاښت-

کچه کول:(ک-چه-که-ول)مصدر متعدی- (۱)ژر ژر ګنډل- پهٔ سر سر ګنډل- (۲)شرمول- حيا اخستل- خيرجه اخستل-

کچه لنګ:(که-چه-لنګ)اسم- يو قسم بيماري-

کچه لولو:(ک-چه-لو-لو)اسم- کچه کونه- خلخلګے- شرمنده کونه-

کچيره:(که-چي-ره)اسم- واحد- مؤنث- کڅوړه- کجوړه- دَ چېلو دَ وېښتو نه جوړه شوې کڅوړه-

کچيکے:(ک-چي-کے)اسم- واحد- مذکر- چريکے- ارغومے- پسوکے- چېلوکے- بره- ګوورے- دَ کډې يا بزې بچے-

کچې:(کهٔ-چې)اسم صوت- (۱)دَ چېلو دَ شړلو دَ پاره آواز- کچه- اُچې- اچه-

کچې:(که-چې)اسم صفت- (۱)کچنی- کمېدونکې بنځه- لولې- پمه- (۲)اسم- دَ درياب دَ غاړې زمکه چې فصل پکښې کولے شي-

کچے:(که-چے)اسم صفت- واحد- مذکر- کچے- دَ کړو پښو لرونکے- مؤنث کچې-

کچے:(که-چے)اسم- (۱)دَ زمکې ناپ- دَ زمکې دَ حدود کره کتنه- (۲)وړوکے جانګے چې ماشومانو ته اغستے شي-

کڅ:(کڅ)اسم- واحد- مذکر- (۱)زادی- هغه زمکه چې دَ درياب پهٔ غاړه وي يا دَ دوو غرونو پهٔ مينځ کښې وي- کڅی- ناوه- کڅه- (۲)شاګې- ګنډ- يو خاص قسم کپړه چې دَ بخيته قميص دَ ګرېوان شا ته ګنډلے شي-

کڅپر:(کڅ-پر)اسم صفت- واحد- مذکر- لټ- ناراسته- سُست-

کڅخول:(کڅ-خول)اسم- واحد- مذکر- دَ غنمو بُوس-

کڅخوله:(کڅ-خو-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ کڅ دَ کپړې نه جوړه شوې ټوپۍ-

کڅکے:(کڅ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ خرهٔ بچے- کوچانے- کوچے-

کڅکے:(کڅ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ پرتوغانښ سُورے- جمع کڅکی-

کڅله:(که-څهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- کوواټه- کاټه- کواټه- دَ څپياکو ډېرۍ-

کڅمڅے:(کڅ-مه-څے)اسم- غلې غلې خبرې- پس پسے- پهٔ غوږ کښې غلې غلې از پټې پټې خبرې-

کڅمغ:(کڅ-مغ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم صحرائي بوټے چې دَ صحرا خلق يې پخوي-

کڅوبے:(که-څو-بے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کڅوک-

کڅوره:(که-څو-ره)اسم- واحد- مؤنث- اَس پندوکے-

کڅوړه:(که-څو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کڅونه- لهٔ کپړې جوړه شوې بوجۍ- تيلۍ- جمع کڅوړې-

کڅوک:(کڅ-وک)اسم- واحد- مذکر- دانه- ننکۍ- ګرمي- کڅوکا- کوڅوک- څڅبکے- کڅوبکے- کڅوبے- دانګې- لکۍ- يو بيماري چې پهٔ انسان غټې غټې دانې راخيژي- سره کانچه-

کڅوکا:(که-څو-کا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کڅوک-

کڅونه:(که-څو-نه)اسم- واحد- مذکر- کڅوړه- يوه بيماري چې پهٔ انسان

پکښې دانې راخېژي- لکی- دالګی- کڅوبے- کڅویکے- آب چیچک-

کڅویکے:(کڅ-وی-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کڅوک-

کڅه:(کَ-څه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کڅی- کڅ- (۲)دَ دریاب دَ غاړې پهٔ ښکته زمکه کښې دَ وَنو جنګی-

کڅه:(کَ-څه)اسم- واحد- مؤنث- ټکره- ټوټه- برخه- جمع کُڅې-

کڅی:(که-څی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کڅه/کڅ-

کحل:(کُ-حل)اسم- جمع- مذکر- سُرمه- رانجهٔ- (م- عربی)-

کحال:(کح-حال)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ سترګو ډاکټر- دَ سترګو معالج- (۲)رانجهٔ خرڅونکے- (م- عربی)-

کحیل:(که-حیل)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې پهٔ سترګو کښې یې رانجهٔ اچولی وی- (م- عربی)-

کخ:(کخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم واښهٔ چې ډېر زیات نرم وی- (۲)یو قسم نرے چینجے- (۳)یو قسم چینجے چې دَ ګډانو او مېږو لم لاندې پېدا کیږی-

کخ:(کخ)اسم صوت- دَ مرې نه راوتونکے آواز-

کختی:(کَخ-تی)اسم- جمع- مؤنث- اشاړی مېوه- وچې خرمانی- مندتې- نباتاتی نوم پرونس ډومستیکا (PRUNIS DOMESTICA)-

کخړے:(که-خه-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ یو ستوری نوم-

کخکے:(کخ-کے)اسم- واحد- مذکر- ماچس- تیلے- (افغانستان)-

کخګرے:(کخ-ګهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- پاتې شوے- جمع کخګرې-

کخی:(کهٔ-خی)اسم- جمع- مذکر- دَ زړو ماشومانو پهٔ خېټه کښې واړهٔ واړهٔ چینجی- کیخی- کیخی-

کخی توب:(که-خی-توب)اسم- پاسوانی کونه- دَ باغ ساتنه-

کخی:(که-خی)اسم- واحد- مؤنث- دَ چرګو یو بیماری- ټوغے- ټوغکے-

کخے:(که-خے)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ باغ محافظ- پاسوانی کونکے-

کخے:(که-خے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وړشو- دَ غواګانو دَ څرولو ځاې- (۲)یو قسم ماشے چې پهٔ سپرلی کښې پېدا کیږی- کیخے-

کداړه:(که-دا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- غوزه- ټوپ- خرسک-

کداله:(کَ-دا-له)اسم- واحد- مؤنث- کوداله- ټسکوره- تسکوره- سسکوره- کودالی- جمع کدالې-

کدام:(کَ-دام)کلمه استفهام- څوک- څهٔ- چرته- کوم- (م- فارسی)-

کدای:(که-دای)اسم- چوغه- چغه- (۲)یو قسم چیندخه-

کدخدا:(کد-خُ-دا)اسم- واحد- مذکر- کوربه- دَ کور مالک- بادشاه- مشر- خان- ملک-

کدخدائی:(کد-خُ-دا-ئی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مشری- بادشاهی- (۲)وادهٔ- نکاح-

کدر:(کَ-دَر)صفت- پیکه- ګنده- ناصفا- (۱)تت- (۲)خته- (م- عربی)-

کدو:(که-دُو)اسم- واحد- مذکر- (۱)یوه سبزی- جمع کدوان- نباتاتی نوم ممبرم بېریلی (MEMBRUM BIRILE)- (۲)کمعقل- احمق- سوړ- کدوسرے- بېکاره-

کدوچه:(که-دو-چه)اسم تصغیر- یو قسم وړوکے کدو- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ کدو-

کدودانه:(که-دو-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم دانه- جمع کدودانې-

کدورت:(که-دُو-رَت)اسم- کرکه- نفرت- ناراضګی- خفګان- خوابدی-

کدوړے:(کَ-دوَ-ړے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وړوکے کدو- کدوګے- جمع کدوړی-

کدوزړے:(کَ-دو-زهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کدو تُخم- (۲)یو قسم چینجے چې پهٔ خېټه کښې کیږی- جمع کدوزړی-

کدوسرے:(که-دو-سه-رے)اسم صفت- (۱)بې عقل- کم عقل- بې معنې سړے- (۲)خالی مغزے-

کدوګک:(که-دو-ګک)اسم- واحد- مذکر- یوه آله چې جراحان پرې دَ خبېثلو پهٔ بنیاد دَ رګ نه وینه راکاږی- ښکر- شاخک- (افغانستان)-

کدوګے:(کَ-دو-ګے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- وګورئ کدوړے-

کډ:(کډ)اسم- واحد- مذکر- کوهے- کنده- ړوغل-

کډبنے:(کډ-به-نے)اسم صفت- کډه ګرځونکے- وګورئ کډبه- جمع کډبنی- مؤنث کډبنۍ-

کډبه:(کډ-به)اسم صفت- واحد- مذکر- کډه پهٔ سر- خانه بدوش- چنګنړے- کډه ګرځونکے- کډمار- کډبنے-

کډغالے:(کډ-غا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱) (دَ کډ او غالے مرکب) پهٔ غار کښې وُسېدونکے- جمع کډغالی- مؤنث کډغالې- (۲- اسم)وړوکے کور- کورګے-

کډل:(که-ډل)اسم- واحد- مذکر- غار- جوپړی- جونګنړه- جونګړه-

کډله:(کَ-ډهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- کوډله- جونګنړه- چوپال- څپر-

کډمار:(کډ-مار)اسم صفت- واحد- مذکر- خانه بدوش- چې کډه پهٔ سر ګرځوی- چې دَ استوګې یې څهٔ خاص ځاې نهٔ وی- کډوال- کډبه- کډبنے- جمع کډماران- مؤنث کډماره-

کډن:(که-ډن)متعلق فعل- (۱)سامان/بال بچ سره- عیالدار- لهٔ کډې سره- (افغانستان)-

کډنے:(که-ډه-نے)اسم- جانز- جمع کډنی-

کډو:(که-ډو)اسم- کدو- (عامیانه)-

کډوال:(کډ-وال)اسم صفت- واحد/جمع- عیالدار- خانه بدوش- کډبه- کډبنے-

کډواله:(کډ-وا-له)اسم- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- کډه ګرځونکے- خانه بدوش- کډبه-

کډوبے:(که-ډو-بے)اسم- دَ اُبو جوش-

کډوړے:(که-ډو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ کدو عامیانه قرات- وګورئ کدو-

"ی" (ښې-رِل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ۍ"(پیا-لۍ)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کړه:(که-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کور سامان- اسباب- (۲)آل وعیال- (۳)تلنه- سفر- کوچ- جمع کړې- (کول/کېدل مصدرونه)-

کړه کوړه:(که-ړه-کُو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- لډ کوپړی- لوښی لرګی- دَ کور سامان- جمع کړې کوړې-

کړمل:(کړ-مَل)اسم- دَ شولو دَ پاره تیاره شوې زمکه-

کړی:(که-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ جولاګانو کړی- څپر- دَ کنې کارګاه- (۲)مردار ړنړ- دَ سخا اُبو کنده- خندق-

کړے:(که-ړے)اسم- واحد- مذکر- هغه ژور ځایْ چې جولا دَ تنستې (کنې) اوبدلو پهٔ وخت کښې پښې پکښې ځوړندوی-

کذاب:(که-ذاب)اسم صفت- واحد- مذکر- دروغژن- ډېر دورغ ویونکے- سوړن- (م- عربی)-

کذب:(کذبْ)اسم- دروغ- سوړه- (م- عربی)-

کر:(کُر)اسمِ صوت- دَ څهٔ څیز دَ شلېدلو آواز- (۲)پهٔ کاغذ دَ قلم کرخولو آواز-

کر:(کَر)اسم- دَ کرل مصدر نه اسم- وګورئ کرل-

کر:(کَر)اسم صفت- کوڼ- نهٔ اورېدونکے- (م- فارسی)-

کر:(کَر)اسم صفت- شان و شوکت- رُعب- دبدبه- قوت- طاقت- هېمشه کروفر یو ځایْ راځی-

کرا:(کهٔ-را)اسم صوت- (۱)کرهار- دَ کرکر اواز- (۲)اسم- کرایه- (افغانستان)-

کراب:(که-رابْ)اسم- دَ څناورو یوه بیماری- تبق (م- عربی)-

کراپند:(کَرا-پند)اسم- واحد- مذکر- یوه غرنیزه وُنه- کرپند-

کرات:(که-راتْ)متعلق فعل- جمع دَ کرت- بیا بیا- بار بار- وارې- ځلې- ځل- کرتې-

کرات مرات:(که-راتْ-مه-راتْ)متعلقِ فعل- بیا بیا- بار بار- ډېر ځل- څو ځله-

کراچی:(کَرا-چی)اسم- واحد- مؤنث- هغه ګاډے چې انسان او حېوان ئې راکاږی- ریړګی- ربړو-

کراچے:(کَرا-چے)اسم- واحد- مذکر- هغه چم چې پهٔ کودالی سره لهٔ زمکې جُدا شی- جمع کراچی-

کراره:(که-را-ره)اسم- واحد- مؤنث- خرخره- دَ اَسونو دَ وېښتو خرېلو یوه اَله- جمع کرارې-

کرارے:(کهٔ-را-رے)اسم صوت- دَ کرکر آواز- دَ کرکر مسلسل آواز-

کراړ:(کراړْ)اسم صفت- سخت- محکم- کلک- کروړ-

کراړ:(کِ-راړْ)اسم- (۱)هندو دُکاندار- (۲)صفت- ټګ- غل- (۳)دَ اټک نه اخوا وُسېدونکی- (۴)بنیا- غله یا دانې خرڅونکے- (۵)دَ هندوانو پهٔ څلورو لوئې ذاتونو کښې دریم ذات-

کراړک:(کرا-ړک)اسم- قروت- کُرت-

کراړه:(کَرا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)شاړه زمکه- سخته او شګلنه زمکه- شګنه زمکه- (۲)سخت قُرت-

کراړی:(کَرا-ړی)اسم صفت- دَ کراړ سره متعلق- وګورئ کراړ ۱- کانیز-

کراز:(کراز)اسم- کریز- کوریز- دَ مارغانو مردارې بنې غُرخونه-

کراز:(که-راز)اسم- واحد- مذکر- نازو ادا- کرشمه-

کرازند:(کَرا-زند)اسم صفت- واحد- مذکر- لهٔ بدپرهیزی پهٔ وجه همېشه بیمار سړے- کړاغند- کراړند-

کرازندتیا:(کَرا-زند-تیا)اسم- مؤنث- دَ مرض وُږدوالے او غلبه- کراړندتیا-

کرازه:(کَرا-زه)اسم- واحد- مؤنث- بې مطلبه خبره- بې موده خبره- جمع کرازې-

کراړند:(کَرا-ړند)اسم صفت- وګورئ کرازند-

کراړندتیا:(کَرا-ړند-تیا)اسم- وګورئ کرازندتیا-

کراسته:(کَراسْ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ وړی جوړ شوے لمځے- (۲)هغه څیز یا غله دانه چې دَ لوندوالی لهٔ کبله ښهٔ نهٔ مېده کیږی-

کراسته:(کَراسْ-ته)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم ساګ چې دَ نګولی دَ خوشبویه کولو دَ پاره پکارولے شی- کراسته ګی-

کراسته ګر:(کَراسْ-ته-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- لمځی جوړوُنکے-

کراسته ګی:(کَراسْ-ته-ګی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم ساګ- وګورئ کراسته ۲-

کراستے:(کَراسْ-تے)اسم- (۱)دَ ډېر کار پهٔ وجه دَ لاس پښو سختی- (۲)کره- رسوا-

کراغ:(کَراغْ)اسم صفت- واحد- مذکر- کړاغې سترګې لرونکے- کړاغ- نرے نروچکے- کمزورے-

کراغند:(کَرا-غند)اسم صفت- وګورئ کرازند-

کراکنډه:(کَرا-کَن-ډه)اسم صفت- واحد- مذکر- کم قوته- کمزورے- ضعیف- ناتوانه- بې سېکه-

کرام:(کِ-رامْ)اسم صفت- جمع- مذکر- سخیان او ښهٔ خلق- بزرګان- نېکان- (عربی)-

کراماً کاتبین:(کِ-را-مَن-کا-تِ-بینْ)اسم- جمع- مذکر- دوه فرښتې چې دَ بنده اعمال لیکی-

کرامت:(کِ-را-مَت)اسم- واحد- مذکر- بزرګی- معجزه- جمع کرامات- (عربی)-

کرامتی:(کِ-را-مه-تی)اسم- واحد- مؤنث- دَ کرامت خاوند- کرامت لرونکے-

کرامکله:(که-رامْ-که-له)اسم- مؤنث- یوه سبزی-

کرانچی:(کَران-چی)اسم- مؤنث- کراچی- دَ غویانو ګاډے- لویه ربړه یا چکړه ګاډے- کراچی-

کران کران:(کَران-کَران)اسم صوت- کاں کاں- دَ کارغهٔ آوازونه-

کرانے:(که-را-نے)اسم صفت- کرستانے- کرستیانے- عیسائی- چوړے-

کراوړه:(که-راو-ړه)اسم- مؤنث- کرواړه- پهٔ درمن کښې پاتې شوې غله-

کراوے:(کَرا-وے)اسم- واحد- مذکر- موکل- وکیل ته خپله مقدمه ورکونکے-

کراوے:(که-را-وے)اسمِ صفت- (۱)نګهبان- ساتونکے- محافظ- (دَ فصل وغیره)- (۲)سرپرست-

کراه:(کراهَ)اسم- (۱)پوړی- (۲)کرایه- کرایه باندې ورکونه-

کراهت:(که-را-هَت)اسم- (۱)کرکه- نفرت- (۲)هغه خبره چې شرعاً مکروه وی- (م- فارسی)-

کراهیت:(که-را-هی-یَت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کراهت-

کرائے:(کَرا-ئے)اسم- واحد- مؤنث- جامه-

کرایه:(که-را-یه)اسم- واحد- مؤنث- کرائی- باړه- اجرت- معاوضه-

کرایه دار:(که-را-یه-دارَ)اسمِ صفت- مذکر- څوک چې دَ کرائې پهٔ کور کښې وُسی- کرایه کش-

کرایه کش:(که-را-یه-کَش)اسمِ صفت- وګورئ کرایه دار-

کرائی کش:(که-را-ئی-کَش)اسمِ صفت- واحد- مذکر- کرایه کش- کرایه کښ- کرایه دار-

کرائی:(که-را-ئی/که-رائ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کرایه-

کرب:(کَرب)اسم- واحد- مذکر- نول- درد- تکلیف- (م- عربی)-

کرب:(که-رب)اسم- سل زره ملینه

کرباس:(کر-باسَ)اسم- واحد- مذکر- خامته- الوان- چیټ- دُ مالوچو جوړ ټوکے- بیستی-

کربانه:(کَر-با-نه)اسم- (۱)تور پرقېدونکے رنګ- (۲)یو تور بوټے-

کربذ:(کَر-بَذ)اسم- ډانړس- ډېنډوت کوُنکے-

کربسکه:(کَر-بَس-که)اسم- واحد- مؤنث- کربوسکه- کربیسکه- کربسه- پومبه- مالوچ- جمع کربسکې-

کربسه:(کَر-بهٔ-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کربسکه- جمع کربسې-

کربشا:(کَر-بَ-شا)اسم- واحد- مذکر- دُ یو ځناور نوم- کبرغان- قبرغان- کربوشا-

کربشار:(کربَ-شارَ)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې وُنې نامه-

کربک:(کَر-بَک)اسم- واحد- مذکر- کربوړک- کربوړے-

کربل:(کَر-بَل)اسم- (۱)کوربل- (۲)الودره- کچه ګینده- ټک-

کربلا:(کَر-به-لا)(۱)دَ کرب و بلا مخفف- غم- دړد- (۲)کمے- قحط- سوکړه- (۳)دَ عراق دَ یو ښار نوم چرته چې حضرت امام حُسېن علیه السّلام سره دَ ملګرو شهید شوے وو- (م- عربی)-

کربوړ:(کَر-بوړَ)اسم- واحد- مذکر- کورنی چمچورکی- کربوړے- دَ سمسرې پهٔ شان یو قسم خزنده-- کربک- کربوړک-

کربوړک:(کَر-بو-ړَک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کربوړ-

کربوړے:(کَر-بو-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کربوړ-

کربوسکه:(کَر-بوس-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کربسکه- جمع کربوسکې-

کربوشا:(کَر-بو-شا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کرُبشا-

کربک:(کَر-بک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کربوړ-

کربیټ:(کَر-بیټ)اسمِ صفت- کجے- کوږ ووږ-

کربېزن:(کَر-بې-زَن)اسمِ صفت- کرمېزن- قرمېزن- ګرېنګن- پوواړ-

کربېزے:(کَر-بې-زے)اسم- قرمېزے- کرمېزے- لاړې- خرمېزې- ګرېنګ-

کربېکے:(کَر-بې-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ پومبې لرګے-

کرپ:(کَرپ)اسمِ صوت- دَ څهٔ نری او وُچ څیز دَ ماتېدو اواز-

کرپا:(کَره-پا)اسمِ صوت- دَ نری او وُچ څیز دَ ماتېدو مسلسل آواز- کرپار-

کرپار:(کَره-پار)اسمِ صوت- وګورئ کرپا-

کرپال:(کَر-پالَ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- ډېرې زیاتې خبرې کوُنکے-

کرپالے:(کر-پا-لے)اسم- واحد- مذکر- کرپل- کرپړه- لهه- هغه ختهٔ چې دَ سېلاب دَ اُبو نه لاندې پاتې شی او دَ وُچېدو نه پس چودې چودې وی-

کرپان:(کَر-پانَ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خنجر چې سیکان یُ ګرځوی-

کر پر:(کَر-پَر)اسم- بکواس- بې هوده خبره-

کرپړ:(کَر-پَړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کرپال-

کرپل:(کَر-پَل)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ کرپالے-

کرپند:(کَره-پَند)اسمِ صفت- وګورئ کرپندے-

کرپندوکے:(کَره-پن-دُو-کے)اسم- واحد- مذکر- پوست (نرم) هډوکے- وګورئ کرپندے-

کرپندے:(کَره-پن-دے)اسم- واحد- مذکر- ککرکے- کرچے- هغه هډوکے یا بل څیز چې دَ چیچولو پهٔ وخت کرچ کرچ کوی- جمع کرپندی-

کرپول:(کَره-په-وَل)مصدرِ متعدی- غاښونو سره ماتول- غاښونو سره کرچول-

کرپون:(کَره-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کرپول-

کرپونکے:(کَره-په-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرپول-

کرپونګ:(کَره-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کرپول-

کرپونه:(کَره-په-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کرپول-

کرپېدل:(کَره-پې-دَل)مصدرِ لازم- پهٔ غاښونو ماتېدل- کرچېدل-

کرپېدن:(کَره-پې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کرپېدل-

کرپېدنګ:(کَره-پې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کرپېدل-

کرپېدنه:(کَره-پې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کرپېدل-

کرپېدونکے:(کَره-پې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرپېدل-

کرپېدهٔ:(کَره-پې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ کرپېدل-

کرت:(که-رَت)متعلقِ فعل- پېره- بار- وار- خل- کرته-

کرت:(کُرت)اسم- قُرت- قروت- یو قسم پخکړے چې دَ اربشو دَ اُوړو او شوملو نه جوړولے شی- وچې کړې شوملې-

کرتب:(کَر-تَب)اسم- واحد- مذکر- کار- تجربه- لیاقت- هنر- کمال- سپاه ګری- بازی ګری- چالاکی-

کرتوت:(کَر-تُوت)اسم- مذکر- عمل- چال- عادت- کردار- چالاکی-

ناکاره کار- بد کار- کړۀ- دَ چالاکۍ کار-

کرته:(کَ-ره-تَه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کرت-

کرته:(کُر-تَه)اِسم- واحد- مؤنث- قمیص- خت- پیرنی-

کرج:(کَرج)اسم- واحد- مذکر- زړۀ باز- اموخته باز- ساتلے باز- کرچ- کرجے- کرچے-

کرجے:(کَرۀ-جے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سپو یو قسم- (۲)وګورئ کرج-

کرخ:(کَرَخ)اسمِ صفت- واحد- مذکر- سست- لټ- ناراسته- تمبل-

کرچ:(کَرچ)اسم- واحد- مذکر- کریچ- زړه توره- کرچے- جمع کرچونه-

کرچ:(کَرج)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کرج- ساتلے باز-

کرچ:(کَرَچ)اسمِ صوت- دَ غاښونو دَ چیچلو ازاز- خرچ- (۲)کرپ-

کرچ کروچ:(کَرَچ-کَروَچ)اسمِ صوت- دَ کچه مېوې لکه مولۍ، ګاځرې، بادرنګ وغېره دَ خوړولو آواز-

کرچل:(کَرۀ-چَل)مصدر- کرچول- څۀ څیز دَ غاښونو سره ماتول یا قېنچۍ سره پرېکول-

کرچل:(کَر-چَل)صفت- (۱)وګورئ کچل- (۲)مصدر- وګورئ کرچول-

کرچم:(کَر-چَم)اسمِ صفت- زعفران-

کرچند:(کَرۀ-چَند)اسمِ صفت- (۱)کلک- سخت- (۲)کرچ کرچ کونکے-

کرچندی:(کَرۀ-چَن-دی)اسمِ صفت- هغه نری او کرپېدلی څیزونه چې کرچ کرچ (کرپارے) کوی- کرپندی-

کرچنډی:(کَر-چَن-ډی)اسم- جمع- مؤنث- سمونه- نوکونه- دَ څاروو کپی او سُمونه-

کرچوکے:(کَرۀ-چو-کے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- سرلېښتے- کرچندے- چچونکے- کرپندے- کرڅے- کرچونے-

کرچول:(کَرۀ-چه-وَل)مصدر متعدی- (۱)څۀ څیز پۀ غاښونو ماتول- (۲)څۀ څیز قېنچۍ سره پۀ تېزه پرېکول-

کرچولے:(کَرۀ-چه-وۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرچول-

کرچون:(کَرۀ-چه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کرچول-

کرچونکے:(کَرۀ-چه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرچول-

کرچونګ:(کَرۀ-چه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کرچول-

کرچونه:(کَرۀ-چه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کرچول-

کرچونے:(کَره-چه-وۀ-نے)اسمِ صفت- پوست او نرم مېوکے- کرچے- کرپندے-

کرچهار:(کَرۀ-چه-هار)اسمِ صوت- دَ کرچ کرچ آواز-

کرچېدل:(کَرۀ-چې-دَل)مصدر لازم- پۀ غاښونو ماتېدل- پۀ غاښونو کښې ریزګی کېدل-

کرچېدن:(کَرۀ-چې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کرچېدل-

کرچېدنګ:(کَرۀ-چې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کرچېدل-

کرچېدنه:(کَرۀ-چې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کرچېدل-

کرچېدونکے:(کَرۀ-چې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرچېدل-

کرچېدۀ:(کَرۀ-چې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ کرچېدل-

کرچے:(کَرۀ-چے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ساګ- شاتره- جمع کرچي-

کرچے:(کَر-چے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کرج-

کرچے:(کَرۀ-چے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- زړۀ تنګے- ژر غصه کېدونکے- خراب طبعیته-

کرچے:(کَرۀ-چے)اسمِ صوت- پۀ غاښونو دَ څۀ سخت څیز دَ خوړلو آواز- کرچهار-

کرڅے:(کَرۀ-څے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ کرچوکے-

کرخ:(کَرخ)اسم- واحد- مذکر- دَ بدن هغه حصه چې بې حسه شي- سوړنګ- سوړنګوړ- سوړسمخ- کرخ-

کرخت:(کَه-رَخت)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)سخت- تند- (۲)وګورئ کرخ- مړ- بې حرکته- سوړ- بې تودوخی- (۳)پۀ قرار- پۀ قلار-

کرخولکه:(کَر-خو-له-که)اسم- واحد- مؤنث- پۀ لرګی باندې دَ توړلو نه وروستو پاتې زیروالے-

کرخه:(کَر-خه)اسم- واحد- مؤنث- لوبیا- بابرینګ- بابرې- نباتاتی نوم ډولی کاس سائننسز (DOLICHOS SINENSIS)- جمع کرخې-

کرخی:(کَر-خی)اسم- واحد جمع- مؤنث- پلی لرونکے یو قسم بوټے چې څاروی یې خوری-

کردار:(کَر-دار)اسم- واحد- مذکر- (۱)عمل- کار- کړۀ- (۲)روش- دور- (۳)پۀ مرکباتو کښې دَ لاحقې پۀ طور استعمالیږی لکه بدکردار- نېک کردار-

کرداری:(کَر-دا-ری)اسم- دَ کردار خاوند- دَ نېک عمل څښتن-

کردګار:(کَر-د-ګار)اسمِ صفت- کارکونکے- لوئ څښتن- مالک- آقا- دَ خدائ تعالی یو صفتی نوم-

کردونے:(کَر-دو-نے)اسم- واحد- مذکر- کودونے- کودرکے- کودرے- جمع کردونی-

کرده:(کَر-ده)اسم- (۱)کړے کار- (۲)عمل- کار- کړۀ وړۀ- کړده- جمع کردې-

کرده:(کَر-ده)اسم- واحد- مؤنث- شکل- څېره- ساخت-

کرړکے:(کَر-ړه-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ انګورو دَ پاڼو پۀ شان پاڼې لرونکې یوه غرنیزه ګیاه- (افغانستان)-

کرړول:(کَر-ړه-وَل)مصدر- رغړول- کاڼو یا بل څۀ څیز ته له یو ځایه بل ځای ته حرکت ورکول- ګرړول-

کرړولے:(کَر-ړه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرړول-

کرړون:(کَر-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کرړول-

کرړونکے:(کَر-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کرړونکی- مؤنث کرړونکې- وګورئ کرړول-

کرړونه:(کَر-ړه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کرړول-

کرړه:(کَر-ړه)اسم- واحد- مؤنث- یوه ونه او دَ هغې مېوه- جمع کرړې-

کرږېدل:(کر-ږې-دل)مصدر لازم- (۱)دَ کرِ کرِ آواز کول- (۲)پهٔ مزه مزه تلل- رغړېدل- (۳)دَ غټې تيږې يا کاڼي رغړېدل- ګرږېدل-

کرږېدن:(کر-ږې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کرږېدل-

کرږېدنه:(کر-ږې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرږېدل-

کرږېدونکے:(کر-ږې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرږېدل-

کرږېدهٔ:(کر-ږې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کرږېدل-

کرږے:(کر-ږے)اسم- واحد- مذکر- (۱)يوه حشره- (۲)نرے چست سړے- نرے نروچکے-

کرزمان:(کر-زه-مان)اسم- واحد- مذکر- يو قسم سوان چې قصاب پرې چاړهٔ تېروي-

کرزو:(کر-زو)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ چينجي يو قسم- (۲)يو قسم بېلچه-

کرړل:(کر-ړل)اسم- واحد- مذکر- باوے- هغه ټوکرې چې پومبه پکښې ټولولے شي- (۲)کرښه- څرښنده-

کرره:(کرهٔ-ره)اسم صوت- واحد- مؤنث- تېره چغه- تېزه چغه- کريکه- کړيکه- جمع کررې-

کرس:(کرس)اسم صوت- دَ وچ لرګي دَ ماتېدو آواز- کړس-

کرس:(کرس)اسم- خيرے- دَ بدن خيرے-

کرس:(کرس)اسم صفت- اړی مار- هغه غوايهٔ چې پهٔ آسانه نهٔ جوتې کيږي-

کرس:(کرس)اسم- واحد- مذکر- هغه ځاې چې پکښې دَ شپې کډې چېلې بندولے شي- پنډغالے- ګاش-

کرساز:(کر-ساز)اسم صفت- کر کونکے- کسان-

کرسانړ:(کر-سانړ)اسم صفت- واحد- مذکر- کسان- زميندار-

کرساؤ:(کر-ساؤ)اسم صفت- ريش دار- کيرور- ګيره ور-

کرسپه:(کرس-په)اسم- واحد- مؤنث- دَ وړې نه جوړه پېړه رسۍ-

کرسمه:(کرس-مه)اسم- واحد- مؤنث- مېخ-

کرسن:(کرهٔ-سن)اسم صفت- ژر ماتېدونکے وچ څيز- کړسن- کروسند-

کرسي:(کر-سي)اسم- واحد- مذکر- (۱)کرسۍ- (۲)يو قسم غرنيزه ګياه چې دَ سترګو پهٔ دوائی کښې استعمالولے شي-

کرسي نامه:(کر-سي-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- شجره- شجره نسب-

کرسۍ:(کر-سۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- چوکۍ- دَ ناستې چوکۍ- جمع کرسيانې-

کرش:(کرش)اسم- پهٔ مشين مات کړے شوی کاڼي-

کرش:(کرش)اسم صوت- دَ پښو آواز-

کرش:(کرش)اسم- پهٔ مېخ نهٔ پوهېدنه- کم عقلي- کميني-

کرش:(کرش)اسم صوت- پهٔ خوب کښې دَ خرېدو آواز-

کرشپه:(که-رش-په)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم غرنيزه خوشبوداره ګياه چې خوشبوداره او خوندناکه وي-

کرشت:(کر-شت)اسم- واحد- مذکر- يو قسم غرنيز مارغهٔ- چندال- چندن-

کرشته:(که-رش-ته)اسم- واحد- مؤنث- ګند وغيره- خځله-

کرشکه:(کر-شهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- خوشبو لرونکے يو خړرنګے بوټے-

کرشکے:(کرش-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ يو بوټي نوم چې ګل ئې ازغن وي-

کرشمه:(که-رش-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ سترګو سره اشاره- نخره- ځلوه- کرتب-

کرشنه:(کرش-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)غلشکه- ټبنج- نخره- (۲)هنر- (۳)نقش-

کرشنيل:(کرش-نيل)امس- دَ سوښېر دَ جوړولو ستنې- (افغانستان)-

کرشېدل:(کرهٔ-شې-دل)مصدر لازم- دَ خوراک دَ پاره څهٔ شے نهٔ موندل-

کرشېدلے:(کرهٔ-شې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرشېدل-

کرشېدن:(کرهٔ-شې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کرشېدل-

کرشېدنګ:(کرهٔ-شې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کرشېدل-

کرشېدنه:(کرهٔ-شې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرشېدل-

کرشېدونکے:(کرهٔ-شې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کرشېدونکي- مؤنث کرشېدونکې- وګورئ کرشېدل-

کرشېدهٔ:(کرهٔ-شې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کرشېدل-

کرښۍ:(کر-ښۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- کرښې- چرخۍ- دائره- حلقه چې دَ جادو دَ بچ کېدونه پهٔ زمکه کېر چاپېره راکښلے شي-

کرښپل:(کرښ-پل)اسم- واحد- مذکر- دَ پښو نښه- نقش قدم- (افغانستان)-

کرښکالے:(کرښ-کا-لے)اسم- واحد- مذکر- اوله- څلورمه- اوومه- اولسمه- دَ زائچې خانه چې دَ نجوم عالمان پرې دَ قسمت حال معلوموي- (افغانستان)-

کرښل:(کر-ښل)مصدر- کرښې راکښل- تصوير جوړول-

کرښنده:(کر-ښن-ده)اسم- واحد- مؤنث- نشانی- نښه-

کرښندے:(کر-ښن-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ تصوير ورومبے حالت- (افغانستان)-

کرښندے:(کر-ښن-دے)اسم- واحد- مذکر- تجويز- منصوبه- تصوير- (افغانستان)-

کرښنه:(کر-ښه-نه)اسم- نقش کونه- تصوير جوړونه-

کرښولے:(کر-ښهٔ-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- دَ ګورئ کرښل-

کرښوندے:(کر-ښون-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټبکے- چرتون- (۲)جګړه- (۳)څه- کوره- مټه- (افغانستان)-

کرښه:(کر-ښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لکيره- (۲)علامه- اثر- (۳)دائره- اړه- (۴)حدبندی- جمع کرښې-

کرښۍ:(کر-ښۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- دائره- حلقه- چرخۍ- چکر- چورخانه- غنډه کرښه-

کرغ:(کَ-رغ)اسم- واحد- مذکر- يو قسم تريخ بوټے-

کرغ:(کرغ)اسم- واحد- مذکر- کراغ- تريخ-

ئ (څې-رل)، ې (مې-ره-ول)، ۍ (پيا-لۍ)، ے (تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

کرغاښے:(کر-غا-ښے)اسم- واحد- مذکر- چخاښکے-
کرغچکه:(کر-غه-چه-که)اسم- واحد- مؤنث- کلغچکه- ګیړکه- کشکره- کېشکره- یو قسم مرغی-
کرغچے:(کر-غه-چے)اسم- واحد- مذکر- دَ ژامې هډوکے- جمع کرغچی-
کرغړ:(کر-غړ)اسم- واحد- مذکر- خفګان- تکلیف- غم- مصیبت- کرغړه-
کرغړوج:(کر-غه-ړوج)اسم- واحد- مذکر- کونګټ- یوه حشره-
کرغشے:(کر-غه-شے)اسم صفت- ناهموار- ناهوار- خیګ-
کرغښے:(کر-غه-ښے)اسم- دَ ژامې وروستے هډوکے- برغښے- کجکے- جمع کرغښی-
کرغم:(کر-غم)اسم- واحد- مذکر- پوړے- دَ کوناټی راوتلے هډوکے-
کرغنه:(کر-غه-نه)امس- واحد- مؤنث- یو غرنیز بوټے چې ډېر سخت او تېرهٔ ازغی لری-
کرغوچ:(کر-غوچ)اسم صفت- قطع- پرېکړے شوے- کرغڅ- کرغچ-
کرغول:(کر-غول)اسم- واحد- مذکر- دَ مارغانو یوه بیماری-
کرغه:(کر-غه)اسم- واحد- مؤنث- وچوبه- شاړه زمکه- چې ګیاه کمه کوی-
کرغه:(کر-غه)اسم- واحد- مؤنث- چراګاه- ورشو-
کرغهٔ:(کر-غهٔ)اسم- واحد- مذکر- کارغهٔ- کاغه- (افغانستان)-
کرغېړ:(کر-غېړ)اسم صفت- وګورئ کرغېړن-
کرغېړل:(کر-غې-ړل)مصدر- وګورئ کرغېړول-
کرغېړن:(کر-غې-ړن)اسم صفت- ناولے- ګنده- کرغېړ- (افغانستان)-
کرغېړنتوب:(کر-غې-ړن-توب)اسم- واحد- مذکر- ناپاکی- ګنده والے- ناولتیا-
کرغېړنتیا:(کر-غې-ړن-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کرغېړنتوب-
کرغېړنه:(کر-غې-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرغېړل-
کرغېړنېدل:(کر-غې-ړهٔ-نې-دل)مصدر لازم- ګنده کېدل- ناپاکېدل-
کرغېړنېدن:(کر-غې-ړهٔ-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کرغېړنېدل-
کرغېړنېدنه:(کر-غې-ړهٔ-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرغېړنېدل-
کرغېړول:(کر-غې-ړهٔ-ول)مصدر متعدی- ګنده کول- صفا څیز ګنده کول- ناولے کول-
کرغی:(کر-غی)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم بوټے-
کرغے:(کر-غے)اسم- واحد- مذکر- ورشو- چراګاه- چې چرته مالونه څرولے شی--
کرفر:(کر-فر)اسم مرکب- (۱)کروفر- شان وشوکت- درز- ټره خره- جاه وجلال- رُعب داب- (۲)کبر- غرور- خان ښیئنه- درز دروز- دبدبه-
کرفس:(کر-فس)اسم- واحد- مذکر- یو قسم سبزی چې ډېر تېز بوئ کوی خو ښهٔ نهٔ لګی او پهٔ دارو کښې استعمالیږی-
کرفش:(کر-فش)اسم- واحد- مذکر- کربوړے- چرمښکی-
کرک:(کرک)اسم- (۱)مرز- (۲)سپین غنم- (۲)هغه خټه چې سېلاب راوړی وی او پړق پړق چاؤدې وی-
کرک:(کرک)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپین اَس- (۲)برج سرطان-
کرک:(کرک)اسم- واحد- مذکر- درد- تکلیف-
کرکانړه:(کر-کان-ړه)اسم- (۱)لهٔ غرهٔ راغرځېدلې غټه کاڼه- (۲)دروغ- بې بنیاده خبره- کرکنړه- کرکنړ-
کروغ:(ک-روغ)اسم- واحد- مذکر- ورشو- چراګاه- کرغ-
کرغړے:(کر-غهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- خفګان- درد- تکلیف-
کرغېړل:(کر-غې-ړل)مصدر- ګنده کول- ناولے کول- جمع کرغړی-
کرغېړن:(کر-غې-ړن)اسم صفت- ناولے- ګنده- (افغانستان)-
کرغېړنه:(کر-غې-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرغېړل-
کرکاڼے:(کر-کا-ڼے)اسم- واحد- مذکر- هغه کاڼے چې دَ زرو ښهٔ والے بدوالے پرې معلوموله شی- (افغانستان)-
کرکباز:(کرک-باز)اسم صفت- بټېرباز-
کرکبازی:(کرک-با-زی)اسم- بټېربازی- دَ مرزانو ساتنه-
کرکر:(کر-کر)اسم صوت- (۱)کرار- کرارے- کرکور- کره کره- (۲)ښهار-
کرکرانے:(کر-که-را-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو دَ لوبو یوه دَ لرګی جوړه اله چې چورلوی ئې او کرکر ترې وباسی- کرکرانکه- کرګاړے-
کرکرونده:(کر-کر-ون-ده)اسم مرکب- کرکیله- زمینداره- دهقانی- دَ کرلو رېبلو کار- زمیداره- زمیداری-
کرکره:(کر-که-ره)اسم- (۱)پیاده- شاتړ- ملاتړ- (۲)دَ چرګ خنډے- قرقره-
کرکرے:(کر-کهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)شادوباله- یو قسم مرغی- (۲)اسم صوت- دَ کرېدلو آواز- (۳)تپچه- یو قسم آله چې دَ کرکر آواز کوی- جمع کرکری-
کرکړه:(کر-کهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- تاج- قرقره- (افغانستان)-
کرکړې:(کر-کهٔ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ غرغړې/غرغړی- دَ أبو پهٔ ذریعه دَ غړ غړ اواز ایستنه- دَ تالو وینځنه-
کرکړی:(کر-ک-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کرکوړه- کورکوړه- ګوګوشتکه- کورکوړی-
کرکړے:(کر-کهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- څرخه- دَ أبو راویستو څرخه- ګړګړے- ګرګړے- چاښے- څاښے-
کرکڅن:(کرک-څن)اسم صفت- کرکه کونکے- نفرت کونکے- چې دَ هر څیز نه کرکه کوی- کرکن- کبرژن
کرکله:(کر-که-له)صفت- تل ترتله- همېشه-
کرکم:(کر-کم)اسم- واحد- مذکر- قوس قزح- دَ بوډۍ ټال- (فارسی)-
کرکم:(کر-کم)اسم- مذکر- ګنګو- زغفران- (فارسی)-
کرکمن:(کر-که-من)اسم- واحد- مذکر- کورکمان-
کرکن:(کرهٔ-کن)اسم صفت- وګورئ کرکڅن-
کرکند:(کر-کند)اسم- شاڼوله-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېښ "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ه "(ز-ړه)، هٔ "(ړو-بې-دهٔ)

کرکنډ:(کَر-کنډ)اسم- مذکر- وګورئ کرکانډه-

کرکنډول:(کَر-کنډ-ډه-وَل)مصدر متعدی- (۱)شړکول- ګرړول- غرخول- رغړول- (۲)دروغ جوړول-

کرکنډون:(کَر-کن-ډه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کرکنډول-

کرکنډونه:(کَر-کنډ-ډه-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرکنډول-

کرکنډونکے:(کَر-کنډ-ډه-وون-کے)اسم- واحد- مذکر- جمع کرکنډونکی- مؤنث کرکنډونکې- وګورئ کرکنډول-

کرکنډه:(کَر-کَن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دروغ خبره- (۲)دروند او غټ کاڼے (۲)اغزنه جاړه او دَ هغې مېوه- کرکنډه- نباتاتی نوم زیزی فس نوموليريا (ZIZYPHUS NUMMLARIA)- جمع کرکنډې-

کرکنډی:(کَر-کَن-ډی)اسم صفت- واحد- مذکر- دروغژن- لافو-

کرکنډېدل:(کَر-کنډ-ډې-دَل)مصدر لازم- خوزېدل- شړکېدل- غرخېدل-

کرکنډېدنه:(کَر-کَنډ-ډې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرکنډېدل-

کرکنډېدونکے:(کَر-کنډ-ډې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کرکنډېدونکی- مؤنث کرکنډېدونکې- وګورئ کرکنډېدل-

کرکڼ:(کَر-کَڼ)اسم- واحد- مذکر- یو کڼ ځنګلی بوټے- جاځه-

کرکڼه:(کَر-کَڼ-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بېرې دَ خاندان یو ازغن بوټے او دَ هغې مېوه- کرکنډه- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګورئ کرکنډه دریمه معنٰی-

کرکوړه:(کَر-کو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کوګړې- کوګوشتکه- درخې- یو خوږاوازے مارغهٔ-

کرکه:(کَرهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- نفرت- بېزاری- سپک کتنه- ځنګ- پړه کونه- یو شے نهٔ خوښونه-

کرکه ناک:(کَرهٔ-که-ناک)اسم صفت- کرکژن-

کرکے:(کَر-کے)اسم- واحد- مذکر- خر- باړ وړونکے خناور-

کرکے:(کَر-کے)اسم- واحد- مذکر- کېنډے- کېنډے-

کرکیله:(کَر-کی-له)اسم- واحد- مؤنث- کرکرونده- زمیداری- کاشتکاری- بزګری- جمع کرکیلې-

کرکېژن:(کَر-کې-ژَن)اسم صفت- نفرت کونکے- کرکه کونکے-

کرکېمه:(کَر-کې-مه)اسم- واحد- مؤنث- پنجره- دَ دام یو قسم-

کرکی:(کَر-کی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تېش- پاله- سپاره- سسپار- (۲)مړزه- بټېره- سائنسی نوم کوټرنکس (COTURNIX)-

کرک:(کرک)اسم- پهٔ یو مخ اُوښکې بهېدنه- اوښې بهېدنه-

کرګدن:(کَر-ګَ-دن)اسم- واحد- مذکر- ګېنډا- یو مشهور لوئ او غټ خناور- کرکے- کرک یو ښکرے-

کرګر:(کَر-ګَر)اسم صفت- واحد- مذکر- کرونده ګر- جمع کرګری-

کرګرے:(کَر-ګهٔ-رے)اسم صفت- واحد- مذکر- کرونده ګرے- جمع کرګری-

کرګس:(کَر-ګَس)اسم- واحد- مذکر- یو مُردارخور غټ مارغهٔ- ګرګس- (م- فارسی)-

کرګنے:(کَر-ګهٔ-نے)اسم صفت- (۱)پهٔ یو مخ اوښې بیونکے- (۲)کر کونکے-

کرګی:(کَر-ګی)اسم- واحد- مؤنث- زړې وړې تېرې پاڼې لړونکے یو قسم بوټے-

کرل:(که-رَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)چټو- ونګ- دَ سنګ مرمرو جوړ وړوکے شان چټو چې حکیمان پکښې کُشتې ټکوی- (۲)ګنګره- کنګل- (۲)پېروے- رش-

کرل:(که-رَل)مصدر- (۱)پهٔ زمکه کښې دَ زرغنې دَ پاره تخم اچول- (۲)وېشنل-

کرلے:(که-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کرلی- مؤنث کرلې- وګورئ کرل-

کرنه:(که-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرل-

کرونکے:(که-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرل-

کرلن:(کَر-لَن)اسم صفت- نیم پوخ شوے- دَ غنمو یا جوارو کچه دانې چې وریتې کړے شي- الوی-

کرلاغ:(کَر-لاغ)اسم- واحد- مذکر- دَ کورنی مرغی نه لوړه غټه یو خوش آوازه مرغی- جوغنده- بوړا- جل-

کرل ریبل:(که-رل-ري-بَل)اسم مرکب- (۱)جوړول- ورانول- رنګول- (۲)وهم کول- سوچ کول- (۲)کر کول- کر کرونده کول- لوکول- زراعت-

کرله:(که-رهٔ-له)اسم- کرنه- زراعت- زمیداره- (افغانستان)-

کرلے:(که-رهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرل-

کرم:(که-رَم)اسم- بخشش- نېکی- مهربانی- پهٔ طریقې سره چا سره ملاوېدنه-

کرم:(کَ-رَم)اسم- واحد- مذکر- یو قسم چینجے- (فارسی)-

کرم:(کَ-رَم)اسم- واحد- مذکر- بادګوله- دَ غم لهٔ لاسه درد-

کرم:(کَرم)اسم صفت- کوړ- (فارسی)-

کرماچو:(کَر-ما-چو)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم دارو عفص- (۲)دَ یوې زنې نوم چې دَ ځېږی پهٔ شان وی مېوه يې ازمه او ډېره طاقتوره وی- دَ وجود دَ پټو مضبوطولو دَ پاره خوړے شي-

کرمچ:(کَر-مچ)اسم- یو قسم سپک بوټان چې اکثر يې لوبغاړی استعمالوی-

کرمچه:(کَر-مهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- کچه ګُټه- کچنه ګُټه-

کرم ساګ:(که-رم-ساګ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ساګ-

کرم کدو:(که-رم-که-دُو)اسم- ګوپی- یو قسم سبزی- دَ نباتاتی نوم ایلیفینټوفس سکیبر (ELEPHANTOPHUS SCABER)-

کرم کرد:(که-رم-کرد)اسم صفت- هغه سړے چې شوګیرې يې کړی وی- بې خوبه- شوګیرو وهلے-

کرمکله:(که-رَم-که-لهٔ)اسم- بندکوبی- بندګوپی- یو قسم سبزی-

کرمن:(کَر-مَن)اسم صفت- هغه سړے چې شوګیرې يې کړی وی- بې خوبه- شوګیرو وهلے-

کرمن:(کَر-مَن)اسم صفت- چینجن- چینجو خوړلے- زوړ-

كرمنتوب:(كَر-مَن-توب)اسم- شوكير- شپه پهٔ ويښه تېرونه- بې خوابي- كرمنوالے-

كرمنتوب:(كَر-مَن-توب)اسم- چينجنوالے- زوړوالے- كرمنوالے-

كرمنوالے:(كَر-مَن-وا-لے)اسم- وګورئ كرمنتوب-

كرمنګ:(كَر-مَنګ)اسم- واحد- مذكر- صحراخرس- ساراني مېلو يا يږ- رودكر-

كرمنګ:(كر-مَنګ)اسم- واحد- مذكر- تيتر- يو قسم مارغهٔ-

كرمنوالے:(كَر-مَن-وا-لے)اسم- وګورئ كرمنتوب-

كرموند:(كَر-مُوند)اسمِ صفت- بونډې ګټې لرونكے- لنډې ګټې لرونكے-

كرمونډے:(كَر-مون-ډے)اسمِ صفت- واحد- مذكر- هغه سړے چې دَ بيمارئ پهٔ وجه يې ګټې وچې شوې وي-

كرمه:(كَر-مه)اسم- واحد- مؤنث- مسواكه ګټه- دَ شهادت ګټه-

كرن:(كه-رَن)اسمِ صفت- (۱)وېرېدونكے- ډارن- (۲)كمزورے- ضعيف- (افغانستان)-

كرنج:(كَرَنج)اسم- زريږه-

كرنج:(كَ-رنج)اسمِ صفت- شين ستركے-

كرنج:(كَرَنج)اسم- يو قسم ساګ-

كرنجو:(كَرَن-جو)اسم- واحد- مؤنث- خپسه- خپسكه- خپكې- دَ خوب يوه بيمارى- (م- فارسى)-

كرنجوئي:(كَرَن-جو-ئي)اسم صفت- يو آبى قسم رنګ-

كرنجېدل:(كَرَن-جې-دَل)مصدرِ لازم- خرېدل- لهٔ سينې آواز وتل-

كرنجېدلے:(كَرَن-جې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذكر- جمع كرنجېدلي- مؤنث كرنجېدلې- وګورئ كرنجېدل-

كرنجېدن:(كَرَن-جې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنجېدل-

كرنجېدنه:(كَرَن-جې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنجېدل-

كرنجېدونكے:(كَرَن-جې-دون-كے)اسمِ فاعل- واحد- مذكر- جمع كرنجېدونكي- مؤنث كرنجېدونكې- وګورئ كرنجېدل-

كرنجېدهٔ:(كَرَن-جې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضى استمرارى دَ واحد غائب صيغه- وګورئ كرنجېدل-

كرند:(كرند)اسم- (۱)ډاګ- مېدان- مواره زمكه- (۲)زيرِ غندي اس يا قچر-

كرندک:(كه-رَن-دَک)اسم- سورمل- بكاړے- يو ازغن بوټے- (افغانستان)-

كرندوی:(كه-رن-دوی)اسم صفت- پهٔ زميدارئ كولو كښې تكړه او ماهر-

كرنده:(كَرَن-ده)اسم- خواست- پاته- غبته- غښتنه-

كرندے:(كَرَن-دے)اسم- واحد- مذكر- يو قسم آله چې كاڼرې وغېره پرې دَ زمكې راوكښے شي-

كرنږ:(كَرَنږ)اسم صفت- دَ زخم يا دانې سخت نو- پرچوخے- (افغانستان)-

كرنږه:(كه-رن-ږه)اسم- واحد- مؤنث- دَ يږې مېوې نامه-

كرنډى:(كه-رن-ډى)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ ګلكارانو يوه آله- (۲)سيپۍ چې دَ تېيم نه پرې غوړى رااخستلے شي-

كرنګ:(كه-رَنګ)اسم- واحد- مذكر- لوېرونده- څنكه- كپرى- ككرى-

كرنګه:(كَرَنګ-كه)اسم- واحد- مؤنث- وچه غاړه- ګرګرو- جمع كرنګې-

كرنګ:(كَرَنګ)اسم صفت- يخ پخ- كنګل- كوكله- (كول/كېدل مصدرونه)-

كرنګ:(كه-رَنګ)اسم- (۱)سوربخن اس- (۲)دَ اَس يا خر بچے- (۳)كرنه- كر كونه-

كرنګ:(كَرَنګ)اسم صفت- پهٔ وينو لړلے-

كرنګول:(كَرَنګ-ګه-وَل)مصدرِ متعدى- (۱)پهٔ وينو كښې لړل- (۲)يخ پخ كول- كنګل كول- كوكله كول-

كرنګولے:(كَرَنګ-ګه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذكر- وګورئ كرنګول-

كرنګون:(كَرَنګ-ګه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنګول-

كرنګونه:(كَرَنګ-ګه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنګول-

كرنګوهٔ:(كَرَنګ-ګه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنګول-

كرنګېدل:(كَرَنګ-ګې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)پهٔ وينو كښې لړلے كېدل- (۲)يخ پخ كېدل- كوكله كېدل- كنګل كېدل-

كرنګېدلے:(كَرَنګ-ګې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذكر- وګورئ كرنګېدل-

كرنګېدن:(كَرَنګ-ګې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنګېدل-

كرنګېدنه:(كَرَنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنګېدل-

كرنګېدهٔ:(كَرَنګ-ګې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ كرنګېدل-

كرنه:(كه-رهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ كرل-

كرنى:(كَر-نى)اسم- واحد- مؤنث- دَ يوې وُنې نامه-

كرنېل:(كَر-نېل)اسم- واحد- مذكر- فوجى افسر- دَ رجمنټ افسر- (م- انګريزى)-

كرڼ:(كرڼ)اسم- كرنه- كونه-

كرڼې:(كَر-ڼې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- كرڼچې- كرڼچے-

كرو:(كُ-رو)اسمِ صوت- اُچه- كرې- دَ چېلى دَ شرلو آواز-

كرو:(كه-رُو)اسم- واحد- مذكر- (۱)دَ پيمائش پيمانه چې نهٔ فټه وي- (۲)دَ نيم ميل برابر-

كرو:(كه-رو)اسم- واحد- مذكر- دَ جولاګى خاله- دَ غنى جاله-

كرواړه:(كر-وا-ړه)اسم صفت- (۱)دَ ربيلى فصل نه پهٔ پټى كښې پاتې شونى ډانډې يا وړې- (۲)دَ خاورو پهٔ وړو ټيكرو لوبې كونه-

كروپے:(كه-رو-پے)اسم- جزغاله- څيزغالے- اُبړى-

كروپے:(كرو-پے)اسم صفت- وچ-

كروت:(كَروت)اسم- يو قسم وچ پنير- تروش او وچ پنير چې پهٔ حل كولو ترې لاوڼ جوړيږى-

كروت:(كَروت)اسم- واحد- مذكر- كينه- حسد- بغض-

كروت:(كَر-وَت)اسمِ صفت- غټ او تازه- مضبوط- څرب- تيار-

كروتوب:(كَرو-توب)اسم- (۱)موزيتوب- حسد- بغض- (۲)بخيل توب-

کروټے:(کرو-ټے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- شوم- بخیل- کنکے- کنجے- شومشغال- (۲)تندخویه- تېزمزاجه-

کروتی:(که-رو-تي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ کوهی بوټه چې دَ لرګی نه جوړه وی-

کروټي:(که-رو-ټي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یوه مشهوره مرغۍ- کشکره- مککه-

کروڅکے:(که-روڅ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ زرشک دَ وَنې زیړې او ترخې خېلې چې پهٔ دارو کښې پکارولے شی- کروسکے- (۲)دانې چې مربه ترې جوړولے شی-

کروح:(که-روح)اسم- لوټه-

کروره:(ک-رو-ره)اسم صفت- تس نس- ریز مریز-

کروړ:(کروړ)اسمِ عدد- واحد- مذکر- لس میلئینه- سل لکه-

کروړ:(که-روړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کروړه- تازیانه- تمغه- دره- کوړه- قمچینه- (۲)سنګره- تراړه- ببرینه- (۳)یو ازغن بوټے چې اکثر دَ ولو پهٔ غاړه کېږی- کروړه-

کروړ:(کروړ)اسمِ صفت- (۱)ډېر سخت- کلک- مضبوط- پهلوان-

کروړپتی:(کروړ-په-تي)اسمِ صفت- د کروړونو خاوند- ډېر مالداره-

کروړول:(کرو-ړه-ول)مصدر- مضبوطول- کلکول- سختول- محکمول-

کروړون:(کرو-ړه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ کروړول-

کروړونکے:(کرو-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع کروړونکی- مؤنث کروړونکې- وګورئ کروړول-

کروړونګ:(کرو-ړه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کروړول-

کروړونه:(کرو-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کروړول-

کروړه:(که-رو-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو خېلی دار بوټے چې ازغن وی دَ ولو په غاړو کېږی- دَ مېوې رنګ ې سور وی- کروړه-

کروړه:(که-رو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تازیانه- کوړه- دره- (۲)ټوکر ته چې بهٔ تاؤ ورکړے شی او منجیله شان ترې جوړه شی- چوخرکه- تراټ-

کروړه:(کرو-ړه)اسم صفت- مؤنث- سخت- مضبوط- دَ اسپنې پهٔ شان سخت-

کروړی:(ک-رو-ړی)اسم- د کېږې د ټو ټونه جوړ شوے بال چې اکثر پرې زاړهٔ لوبې کوی-

کروړېدل:(کرو-ړې-دل)مصدرِ لازم- (۱)محکم کېدل- سختېدل- مضبوطېدل- لکه دَ کاڼی سختېدل- (۲)رغږېدل- دَ کاڼو دَ یو ځایٔ نه بل ځایٔ ته ښوېدل-

کروړېدن:(کرو-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کروړېدل-

کروړېدنګ:(کرو-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کروړېدل-

کروړېدنه:(کرو-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کروړېدل-

کروړېدونکے:(کرو-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کروړېدل-

کروړېدهٔ:(کرو-ړې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کروړېدل-

کروړے:(که-رو-ړے)اسم صفت- (۱)بخیل- (۲)سوکت- سخت-

کروژ:(کروژ)اسم- خوښی- خوشحالی- (فارسی)-

کروسکے:(کروس-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کروڅکے-

کروسند:(کرو-سند)اسمِ صفت- (۱)کرسند- کرسندے- کروسند- ژرماتېدونکے لرکے- (۲)سخت- کلک- (۳)مر خشک او وروست څیز- نازک څیز-

کروسه:(کرو-سه)اسم- مؤنث- یو قسمِ ګیاه چې دَ زیړې پهٔ شکل وی او دوائی کښې پکارولے شی-

کروغ:(کروغ)اسم- واحد- مذکر- کارغهٔ- زاغ- کارګه- تاغه- کاغ- وروغ-

کروفر:(که-رو-فر)صفت- شان وشوکت- دبدبه- چټک مټک- کبر- غرور-

کروکور:(کر-و-کور)اسم صفت- پرېشان- پهٔ منډه- کړوپ-

کرول:(که-ره-ول)اسم- واحد- مذکر- (۱)سپینه وریخ- (۲)دَ شاتو مچې-

کرول:(کهٔ-ره-ول)مصدر- کرارے ایستل- کرکر کول- تنګول-

کروے:(که-ره-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع کرولی- مؤنث کرولې- وګورئ کرول-

کرومے:(که-رو-مے)اسمِ صفت- واحد- مذکر- قرتو- فغه سړے چې ډېرې خبرې کوی-

کرون:(کهٔ-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ کرول-

کروندګر:(کر-ون-ده-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- زمیندار- کسان- دهقان- کاشتکار- کر کونکے-

کروندزی:(کر-ون-دزی)اسم صفت- مذکر- کرونده کر- کسان- زمیندار- (افغانستان)-

کرونده:(کر-ون-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ فصل کرلو کار- کر- زمینداری- تخمِ اچونه-

کروندے:(کر-ون-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- کرونده کر- کاشتکار- کسان- دهقان- زمیندار-

کرونګ:(کهٔ-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کرول-

کرونه:(کهٔ-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرول-

کرونکے:(کهٔ-ره-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرول-

کروه:(کروه)اسم- واحد- مذکر- کوس- قریباً دوه میله- دَ میلانې یوه پخوانی اندازه- جمع کروهه/کروهونه-

کروی:(کر-وی)اسم- واحد- مذکر- ګول- غنډمونډ- د بال پهٔ شان ګول-

کروی:(کر-وی)اسم- واحد- مذکر- دَ ټانټو ټوپ- دَ ټانټو ډېرے-

کرویان:(کرو-یان)اسم صفت- جمع- مذکر- شومان- بخیلان-

کرویره:(کر-وی-ره)اسم صفت- (۱)ډېر- ګوګ- (۲)سرګردان- پرېشان- اوتر- جمع کرویری-

کروے:(کر-وے)اسم- واحد- مذکر- دَ زمیداری حفاظت کونکے-

کره:(که-ره)اسم- باربرداری- محصول-

کره:(ک-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ زمکې غنډوزالے- (۲)بال- (۳)ګولا- (کره- م- عربی)-

ئ" (ځی-رل)، ې" (هې-ره-ول)، ی" (یېا-لي)، ے"(تن-دیے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کره:(که-ره)صفت- (۱)موجود- پکښې- حاضر- پهٔ کور کښې سره- (۲)صفا- روغ- ټیک- خالص- د کوټه ضد-

کره:(که-ره)اسم- (۱)بېلکه- دَ غلا مال-

کره:(کهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم بېلچه-

کره:(که-ره)اسم صفت- دَ اسپې یوَکلنے بچے- بیاڼ- بهاڼ- کورنکے-

کره:(کهٔ-ره)اسم- واحد- مذکر- بنګړے- وښے- دَ زنانو یو کالے چې پهٔ لاس اچولے شي-

کره:(که-ره)تکلیف- غم- درد- خفګان- رسوائي- ربړ- زیار- زغفر-

کره توب:(که-ره-توب)اسم- کره والے- تصحیح-

کره کره:(که-ره-که-ره)اسم صفت- (۱)صفا صفا- سپین و صفا- (۲)پخه پخه-

کره کره:(کهٔ-ره-کهٔ-ره)اسم صوت- وګورئ کر کر-

کره کوټه:(که-ره-کو-ټه)اسم صفت- مرکب- روغه او قلپه-

کرهاً:(کر-هن)متعلق فعل- نفرت سره- پهٔ جبر- جبراً-

کرهې:(کر-هې)صفت- تروتازه- شاداب-

کرهې:(کر-هې)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کیکر وُنه- نباتاتی نوم اېکېشیا (ACACIA) یا مېموسا (MIMOSA)- (۲)یو قسم ساګ-

کرهه:(کر-هه)اسم- واحد- مؤنث- نفرت- کرکه- بېزاری-

کرهی:(که-ره-هی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کرائی- کرایه- (۲)معاوضه- مزدوری-

کرهیږ:(کر-هیږ)اسم صفت- کاڼېزه زمکه- دَ کاڼو ځایَ-

کریا:(کر-یا)اسم- خبر- پېغام- (افغانستان)-

کریاب:(کر-یاب)اسم صفت- حاجتمند- محتاج- درمانده- بې اسرې- نېستمن- نیمګړے-

کریابول:(کر-یا-به-ول)مصدر متعدی- محتاجه کول- مجبوره کول- درنول- بار اچول- ځپالول- نښلول- ځپالول-

کریابون:(کر-یا-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ کریابول-

کریابونکے:(کر-یا-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کریابول-

کریابونه:(کر-یا-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کریابول-

کریابی:(کر-یا-بی)اسم- مجبوری- دَ څهٔ څیز یا انسان کمے- هغه کار چې نهٔ پوره کیږی-

کریابېدل:(کر-یا-بې-دل)مصدر لازم- مجبوره کېدل- درمانده کېدل- غریب کېدل- اړېدل-

کریابېدن:(کر-یا-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کریابېدل-

کریابېدنه:(کر-یا-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کریابېدل-

کریابېدونکے:(کر-یا-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کریابېدل-

کریابېدهٔ:(کر-یا-بې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کریابېدل-

کریانه:(کر-یا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تېل مالګه او دَ امروزه ضرورت څیزونه- دَ امروزه استعمال او خرڅ خوراک دوکانداری- (۲)هغه بوټے چې دَ غنمو پهٔ شان وی او پهٔ غنمو کښې کیږی-

کریبش:(که-ری-بش)اسم- دَ رکاب دَ څرمنې والا حصه-

کری پیری:(ک-ری-پی-ری)اسم- نیت کونه- (افغانستان)-

کریتا:(کری-تا)اسم- ترغان- کربوشا- یو قسم ځناور-

کریچ:(کریچ)اسم- واحد- مذکر- کراچ- کرچ- یو قسم توره دانه- (افغانستان)-

کریچے:(کری-چے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم غرنیز بوټے چې دَ سوځولو پهٔ کار راځی- (۲)اسم صوت- کرچے- کرچهار- دَ غاښونو دَ چیچلو اواز-

کریځی:(که-ری-ځی)اسم- واحد- مؤنث- ارکاره-

کریږ:(که-ریږ)اسم- یو ازغنه وُنه چې دَ بېرې هومره سرې سرې خوړې.خوړې دانې نیسی- مېوې ته یَ هم کریړې وائی-

کریړه:(که-ری-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم وُنه چې پاڼې نهٔ لری- (۲)کراړه- جمع کریړې-

کریړه:(که-ری-ړه)اسم- واحد- مؤنث- نازکې څانګې لرونکې یوه وُنه چې مسواکونه ترې جوړیږی-

کریز:(ک-ریز)اسم- دَ مارغانو دَ زړو بڼو غرځونه او نوې بڼې راایستنه-

کریز:(ک-ریز)اسم- واحد- مذکر- کارېز- دَ زمکې دننه دَ اُبو نهر-

کریز:(ک-ریز)اسم- دَ زخم پخېدنه- پهٔ زخم پوټکے راختنه-

کریزه:(کری-زه)اسم- واحد- مؤنث- چغه- کریکه- نعره- کړیکه- کوکه- وګورئ کرېژه- غلبله- جمع کریزې-

کریژه:(کری-ژه)اسم- واحد- مؤنث- کریکه- کوکه- چغه- بقه- سُر- پهٔ تېرهٔ آواز نعره- هیبت ناکه چغه- بژانګه- کړیکه- بُغاړه- بغاره-

کریږه:(کری-ږه)اسم- واحد- مؤنث- کریزه- کریکه- کوکه- جمع کریږې-

کریغه:(کری-غه)اسم- واحد- مؤنث- کریزه- کریکه- چغه- جمع کریغې-

کریکه:(کری-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کریغه/کریزه- جمع کریکې-

کریکې:(کری-کې)اسم- جمع- مؤنث- تېز او اوچت اوازونه- وګورئ کریکه/کریزه-

کریکی:(کری-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ غلې سمبالولو دَ پاره کوټه-

کریم:(که-ریم)اسم صفت- سخی- فیاض- سخاوت کونکے- (م- عربی)

کریم:(کریم)اسم- واحد- مذکر- کُچ- پېروے- ملائی- جمع کریمونه-

کری مری:(ک-ری-مه-ری)اسم صفت- روغ رمټ- روغ جوړ-

کرینګ پرینګ:(کرینګ-پرینګ)اسم مرکب- بدشکله- بدصورته-

کریه:(کر-یه)اسم- واحد- مؤنث- ښار- ښاریه-

کریه:(کر-یه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کرائی- کرایه- (۲)خوراک- خوړه- سُت- کراهه- جمع کرئې-

کریه:(کر-یه)اسم- نفرت آمیز- دَ کرکې قابل-

کریه:(کر-یه)اسم- (۱)حکم- هدایت- فرمان- امر- (۲)واک- وس- قابو-

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(زَ-ړه)، "هٔ"(پو-بې-دهٔ)

(۳)فرض- (۴)فرمانینه- (۵)سفارش-

کریهه:(کری-هه)اسم صفت- بدشکل- ناخوښ- قابل نفرت-

کریېه:(که-ري-یه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کرایه- (۲)حکم- فرمان-

کريږ:(کـ-رېږ)اسم صوت- سپی ته د شړلو آواز- چخې-

کرۍ:(که-رۍ)اسم صوت- اچه- کرو- د چېلۍ د شړلو آواز-

کرېدل:(که-رې-دل)مصدر لازم- (۱)کړېدل- په عذابېدل- (۲)معمولی زخمی کېدل-

کرېړے:(که-رې-ړے)اسم- واحد- مذکر- د ګړې جوړولو کړے- جمع کرېړي-

کرېسه:(که-رې-سه)اسم- واحد- مؤنث- فرېب- دوکه- دهوکه- ټګی-

کرېله:(که-رې-له)اسم- واحد- مؤنث- یوه سبزی چې ډېره ترخه وی- جمع کرېلې- نباتاتی نوم مومرډیکا کرنشیا (MOMORDICA CHARANTIA)-

کرېړے:(که-رې-ړے)اسم- د لویو لویو بریتونو یوه حشره چې اکثر په اوړی کښې شپیلی وهی او رېښمینې کپړې سورې کوی- جینګر- کرړے- کیرړے-

کرېمن:(که-ري-من)صفت- نمژن- نمناک- نوژن-

کرۍ:(که-رۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)خولنه- (۲)کنجی- (۳)صفت- ټوله- تمامه- کرې-

کرۍ شپه:(که-رۍ-شپه)اسم- ټوله شپه- تمامه شپه- د نماښام نه تر سبانی-

کرۍ ورځ:(که-رۍ-ورځ)اسم- ټوله ورځ- تمامه ورځ- د سحر نه تر نماښامه-

کرے:(کهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- دست- د څناورو او بنیادمو یوه بیماری-

کرے:(کهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- د شین رنګ یو مارغهٔ-

کرے:(کهٔ-رے)اسم- پېغام زرونکے-

کړ:(کړ)اسم- واحد- مذکر- تکلیف- غم- درد- کړاؤ-

کړ:(کړ)اسم صوت- د کړ کړ آواز-

کړ:(کړ)اسم- پاتې شوې ګیاه- پاتې شوے واښهٔ-

کړ:(کړ)اسم صوت- د کانو، خښتو د دېوال یا کمر د پرېوتو اواز-

کړ:(کړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)تکلیف- زحمت- کړاؤ- (۲)نشاسته- نشایسته- (۳)د څاروو د خوراک نه پاتې شوې واښهٔ جووار وغېره- لکړ- کانکړ- ټانکړ- کنګړ-

کړا:(که-ړا)اسم صوت- د زړکې د اوازونه-

کړاپ:(کړاپ)اسم صفت- زوړ او کمزور غوائے-

کړاپے:(کړا-پے)اسم- واحد- مذکر- لنډ مزل- لږه فاصله-

کړاچے:(کړا-چے)اسم صفت- واحد- مذکر- نابالغه هلک- ماشوم هلک- جمع کړاچي-

کړاڅے:(کړا-څے)اسم صفت- وګورئ کړاچے-

کړاړه:(کړا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- چاپلوسی- ډاپلې- جمع کړاړې-

کړاسکه:(کړاس-که)اسم صفت- واحد- مذکر- لوړ هلک- قدآور خوان-

کړاسو:(کړا-سو)اسم صفت- کونجے- کونځے- زوړ-

کړاغ:(کړاغ)اسم صفت- کمزورے- نرے نرزچکے-

کړاغ:(کړاغ)اسم- واحد- مذکر- کاغ- زاغ- کارغهٔ- مؤنث کړاغه-

کړاغتوب:(کړاغ-توب)اسم- واحد- مذکر- کړاغتیا- کړاغوالے- کمزوری- کمزورتیا-

کړاغتیا:(کړاغ-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ کړاغتوب-

کړاغند:(کړا-غند)اسم صفت- وچ کلک- نرے نروچکے- مؤنث کړاغنده- جمع کړاغندی-

کړاغندتوب:(کړا-غند-توب)اسم- واحد- مذکر- کمزورتیا- کمزوری-

کړاغندول:(کړا-غن-ده-ول)مصدر متعدی- کمزورے کول- نرے کول-

کړاغندون:(کړا-غن-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ کړاغندول-

کړاغندونکے:(کړا-غن-ده-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړاغندول-

کړاغندونګ:(کړا-غن-ده-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کړاغندول-

کړاغندونه:(کړا-غن-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړاغندول-

کړاغندېدل:(کړا-غن-دې-دل)مصدر لازم- کمزورے کېدل- ضعیفه کېدل- نرے کېدل-

کړاغندېدن:(کړا-غن-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړاغندېدل-

کړاغندېدنګ:(کړا-غن-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړاغندېدل-

کړاغندېدنه:(کړا-غن-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړاغندېدل-

کړاغندېدونکے:(کړا-غن-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړاغندېدل-

کړاغندېدهٔ:(کړا-غن-دې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړاغندېدل-

کړاغوالے:(کړاغ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کړاغتوب-

کړاغېدل:(کړا-غې-دل)مصدر لازم- سترګې لهٔ کمزورتیا پهٔ سبب پرېوتل- کمزورے کېدل-

کړاغېدن:(کړا-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړاغېدل-

کړاغېدنګ:(کړا-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړاغېدل-

کړاغېدونکے:(کړا-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړاغېدل-

کړاغېدهٔ:(کړا-غې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړاغېدل-

کړاک:(کړاک)اسم صفت- تکلیف- محنت- کړان- خواری-

کړاک:(کړاک)اسم- واحد- مذکر- د چنې هومره غنډارے-

کړان:(کـ-ړان)اسم- وګورئ کړاک-

کړاند:(که-ړاند)اسم صفت- پرېشان- غم زده- سرګردان- مصیبت زده- خلبلانده-

کړانکیچ:(کړان-کیچ)اسم- واحد- مذکر- یک لاله- ړی- کاکیشکے- کاکشکے- ګلی پڼډه- د هلکانو یوه لوبه-

کړانګے:(کړانګ-ګے)اسم صفت- واحد- مذکر- کانګ- کاڼا- چیک- کاړینګ- مؤنث کړانګې- جمع ګرانګی- (افغانستان)-

کړاؤ:(که-ړاؤ)اسم- تکلیف- سختی- وګورئ کړاک-

کړاوز:(کـ-ړا-وز)اسم صفت- کوشش کونکے- محنت کونکے- زحمت کش-
کړاوز ربړاوز:(کـه-ړاوز-رب-ړاوز)اسم- خورونه- کړونه زیږونه- خپڼه-
کړاوه:(کـه-ړا-وه)اسم- واحد- مؤنث- کنباوه- لهٔ لرګی جوړ پېزار- جمع کړاوې-
کړائے:(کـه-ړا-ئے)اسم- واحد- مذکر- کړے- کړهے-
کړبا:(کَړه-با)اسم- واحد- مؤنث- فضول خبره- خُشې خبره-
کړبابو:(کَړ-با-بو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مرغی-
کړبو:(کَړ-بو)اسم صفت- سپی خوړلے- سپی داړلے-
کړبېزن:(کَړ-بې-زن)اسم صفت- هغه سړے چې پوزه ئې هر وخت دَ ګنده ډکه وی- ګړنکن- ګړینکن-
کړبېزی:(کَړ-بې-زی)اسم- جمع- دَ پوزې ګندګی- ګړینګ- کړمبزې-
کړبیکه:(کَړ-بی-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ کُندې موټے- دَ قلبې موټے- موټانه-
کړبه:(کَړ-به)اسم- واحد- مؤنث- ټانټه- جمع کړبې-
کړپ:(کَړپ)اسم صوت- دَ څهٔ څیز دَ غرځېدلو آواز- دَ پښو آواز- کړپا-
کړپ:(کَړپ)متعلق فعل- سمدستی- ناڅاپه- سم دَ لاسه-
کړپا:(کَړه-پا)اسم صوت- وګورئ کړپ ۱-
کړپړ:(کَړ-پړ)اسم- جمع- مذکر- فضول خبرې- بې مطلبه خبرې-
[illegible]:(کَړه-پند)اسم صفت- (۱)تکراوېدونکے- (۲)ډېرې خبرې کونکے- [illegible] خبرلوڅ- (۳)تیرې لرونکې لاره- کړپنده-
[illegible]:(کَړه-پن-دو-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- کړپندے- کړپندونکے- نرم مېوکے-
کړپندونکے:(کَړه-پن-دون-کے)اسم صفت- (۱)وګورئ کړپندے- (۲)ډېرې خبرې کونکے-
کړپنده:(کَړه-پن-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کاڼو ډکه لاره- کړپند- (۲)دَ یوې غرئیزې ونې نوم-
کړپندی:(کَړ-پن-دی)اسم- ژرنده- جرنده-
کړپندے:(کَړه-پن-دے)اسم- واحد- مذکر- کړپندے- کړپندوکے-
کړپ کړوپ:(کَړپ-کړوپ)اسم صوت- دَ لوښو لهٔ ایښولو پیدا کېدونکے اواز- (۲)شورزوږ-
کړپول:(کَړه-په-ول)مصدر متعدی- دَ لوښو پهٔ خپلو کښې جنګول-
کړپون:(کَړه-په-ون)حاصل مصدر- وګورئ کړپول-
کړپونکے:(کَړه-په-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړپول-
کړپونګ:(کَړه-په-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کړپول-
کړپونه:(کَړه-په-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړپول-
کړپوه:(کَړه-په-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړپول-
کړپه:(کَړه-په)اسم- واحد- مؤنث- دَ غر پهٔ سر باندې لاره چې ختل پرې ګران وی- کړه لار- کړپی-

کړپهار:(کَړه-په-هار)اسم صوت- کړپا- دَ انسان دَ پښو آواز-
کړپېدل:(کَړه-پې-دل)مصدر لازم- (۱)ړبړېدل- (۲)پهٔ خپلو کښې څهٔ څیز جنګېدل-
کړپېدلے:(کَړه-پې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کړپېدلی- مؤنث کړپېدلې- وګورئ کړپېدل-
کړپېدن:(کَړه-پې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړپېدل-
کړپېدنګ:(کَړه-پې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړپېدل-
کړپېدنه:(کَړه-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړپېدل-
کړپېدونکے:(کَړه-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړپېدل-
کړپېدهٔ:(کَړه-پې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړپېدل-
کړپی:(کَړ-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لفافه- غلاف- نیام- تېکے- صندوقچه- (افغانستان)-
کړپې:(کَړه-پې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کړپه-
کړت:(کُ-ړت)اسم صوت- دَ (کرکې) چرګې آواز-
کړت:(کَړت)اسم صوت- غږ- آواز- لفظ-
کړت:(کُړت)اسم- واحد- مذکر- ټُرت-
کړت پړت:(کَړت-پړت)اسم مرکب- خبرې اترې- غږ-
کړتکے:(کَړت-کے)اسم صفت- کړتو- قرتو- کړتې کونکے- کړتن- بکواسی-
کړتن:(کَړهٔ-تن)اسم صفت- وګورئ کړتکے-
کړتو:(کَړ-تو)اسم صفت- کړتن- ترو- بې فائدې خبرې کونکے- لاپو- دروغژن- چړند- چې هر وخت فضول خبرې کوی-
کړته:(کَړهٔ-ته)اسم- کړته- کښته- ښکته-
کړته:(کَړهٔ-ته)اسم- واحد- مؤنث- عبثه خبره- چټی خبره- بې فائدې خبره- جمع کړتې-
کړتهار:(کَړهٔ-ته-هار)اسم صوت- دَ چرګې وغیره دَ کړت کړت اوازونه- کړتار-
کړتې:(کَړهٔ-تې)اسم- جمع- مؤنث- (۱)عبث او بې معنې خبرې- خوشې خبرې- (۲)ترټې- ټټې- جوهره- چیچړ-
کړتې پړتې:(کَړهٔ-تې-پړهٔ-تې)اسم- جمع- مؤنث- کټې پټې- عبث خبرې-
کړتېدل:(کَړهٔ-تې-دل)مصدر لازم- (۱)فضول خبرې کول- دَ چرګې دَ کړت کړت اوازونه کول-
کړتېدن:(کَړهٔ-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړتېدل-
کړتېدنګ:(کَړهٔ-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړتېدل-
کړتېدونکے:(کَړهٔ-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړتېدل-
کړتېدنه:(کَړهٔ-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړتېدل-
کړتېدهٔ:(کَړهٔ-تې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړتېدل-
کړتے:(کَړهٔ-تے)اسم صفت- (۱)ګنجے- (۲)کړتې کونکے- فضول خبرې کونکے-
کړچ:(کَړچ)اسم صوت- دَ کړچېدو آواز- دَ دوو کلکو څیزونو خپلو کښې سره

دَ نښتو اواز- دَ غاښونو خپلې کښې دَ جنګېدو اواز- دَ کټ دَ خوځېدو اواز- دَ ټوپک دَ ماشې دَ خلاصېدو اواز- دَ زلزلې پهٔ وخت دَ چت دَ خوځېدو اواز- (۲)هېڅ- نُقص-

کړچا:(کَړه-چا)اسم صوت- دَ چت وغېره دَ شړکېدو آواز- کړچهار- وګورئ کړچ-

کړچڼ:(کَړ-چڼ)اسم- واحد- مذکر- دَ نانبايانو هغه آله چې وچ دَوړ پرې ګرولے شي-

کړچند:(کَړهٔ-چَند)اسم صفت- (۱)غړنده- (۲)کړپند-

کړچول:(کَړهٔ-چه-وَل)مصدر متعدي- غاښونه سره يوځاې کول- دَ يخنۍ لهٔ کبله غاښونه جنګول-

کړچون:(کَړهٔ-چه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کړچول-

کړچونکے:(کَړهٔ-چه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړچول-

کړچونګ:(کَړهٔ-چه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړچول-

کړچونه:(کَړهٔ-چه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړچول-

کړچه:(کَړ-چه)اسم- واحد- مؤنث- وَړه سيخ چې لاسکے ئ دَ لرګی وی او دَ تنور نه پرې ايره راوېستے شي-

کړچهار:(کَړهٔ-چه-هار)اسم صوت- دَ کړچ کړچ مسلسل آواز-

کړچې:(کَړ-چې)اسم- واحد- مؤنث- ارکاره- مرکاره- کړچې- کړېچې- کړېځې-

کړچېدل:(کَړهٔ-چې-دَل)مصدر لازم-(۱)دَ يخنۍ لهٔ کبله غاښونه خپلو کښې جنګېدل- دَ کټ خوځېدل- (۲)دَ زلزلې پهٔ وخت کښې دَ چت وغېره شړکېدل-

کړچېدن:(کَړهٔ-چې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کړچېدل-

کړچېدونکے:(کَړهٔ-چې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړچېدل-

کړچېدنګ:(کَړهٔ-چې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړچېدل-

کړچېدنه:(کَړهٔ-چې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړچېدل-

کړچېدهٔ:(کَړهٔ-چې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړچېدل-

کړچي:(کَړ-چي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ کړچې-

کړچے:(کَړهٔ-چے)اسم صوت- دَ زلزلې پهٔ وخت دَ شړکېدو آواز يا زور سره دَ کټ شړکولو آواز- کړچهار-

کړځو:(کَړ-ځو)اسم- واحد- مذکر- کړېچے- مرکاره- ارکاره-

کړځی:(کَړ-ځی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کونړی- قاچوغه- (۲)مرکاره- ارکاره- کړېځی-

کړخ:(کَړخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کنده- ژوره- غار- سمڅه- (۲)کمر- لويو تيرو نه جوړ کمر-

کړخه:(کُړ-خه)اسم- واحد- مؤنث- بلغم- خراشکے- جمع کُړخې-

کړخه:(کَړ-خه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غر پهٔ خوا لښې ژوره کنده او سخته لاره يا کنډ و کپر زمکه- جمع کړخې-

کړخے:(کَړ-خے)اسم- واحد- مذکر- پچه- دَ کولال دَ لوښو جوړولو ځاې-

کړده:(کَړ-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کار- عمل- کړهٔ- کردار- (۲)بندوبست- (۳)خدوخال-

کړدی:(کَړ-دی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ خانه بدوشو خيمه- تمبو- کېږدی-

کړز:(کَړز)اسم صفت- واحد- مذکر- نرے نروچکے ځناور- کمزورے ځناور-

کړس:(کَړس)اسم صوت- (۱)دَ څهٔ ځيز دَ ماتېدو آواز- پړک- (۲)اُچ-

کړسا:(کَړه-سا)اسم صوت- دَ څهٔ ځيز پهٔ خپلو کښې دَ جنګېدو آواز- کړسهار-

کړساو:(کَړ-ساو)اسم صفت- واحد- مذکر- کړواس- چچ ويږے- پلن ويږے-

کړساږ:(کَړ-ساږ)اسم صفت- کارساغ- لوړ دنګ انسان-

کړسپ:(کَړ-سپ)اسم صفت- قصابی شوے- بوټی بوټی-

کړسند:(کَړه-سَند)اسم صفت- بالکل وچ- ژر ماتېدونکے لرګے يا نور څهٔ ځيز- سخت- کلک-

کړسو:(کَړ-سو)اسم- جوړ شوے پان-

کړسول:(کَړه-سه-وَل)مصدر متعدي- لګاتار وهل- مسلسل وهل- پهٔ يو مخ وهل- (۲)دَ لرګی يا سخت ځيز نه دَ کړس کړس آواز وېستل-

کړسون:(کَړه-سه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کړسول-

کړسونکے:(کَړه-سه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړسول-

کړسونګ:(کَړه-سه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړسول-

کړسونه:(کَړه-سه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړسول-

کړسوهٔ:(کَړه-سه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړسول-

کړسهار:(کَړه-سه-هار)اسم صوت- دَ څهٔ سخت ځيز دَ ماتېدو مسلسل آواز- کړسا-

کړسېدل:(کَړه-سې-دَل)مصدر لازم- دَ څهٔ ځيز دَ ماتېدو آواز وتل-

کړسېدن:(کَړه-سې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کړسېدل-

کړسېدنګ:(کَړه-سې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړسېدل-

کړسېدنه:(کَړه-سې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړسېدل-

کړسېدونکے:(کَړه-سې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړسېدل-

کړسېدهٔ:(کَړه-سې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړسېدل-

کړشپ:(کَړ-شَپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ دړو غرونو پهٔ مينځ کښې يوه کنده- (۲)صفت- هغه سړے چې غاښونه ئ نهٔ وی- کنډاس- کړشپے-

کړشپ توب:(کَړ-شَپ-توب)اسم- واحد- مذکر- خله لهٔ غاښونو خالی کېدنه- دَ کړشپ کېدو حالت-

کړشپے:(کَړ-شه-پے)اسم صفت- وګورئ کړشپ- جمع کړشپی-

کړشپی:(کَړ-شه-پی)اسم- کړشپ کېدنه- کړشپ توب-

کړشوب:(کَړ-شوب)اسم صفت- کړشپ- کړشپے- (افغانستان)-

کړشوپی:(کَړ-شو-پی)اسم- مؤنث- کړشپی- کړشپه کېدنه-

کړغ:(کَړغ)اسم صفت- کمزورے- بې حسه- حرکت نهٔ کونکے- کړاغ-

کړغتوب:(کړغ-توب)اسم- مذکر- د کړغ کېدو حالت- کړغتیا-
کړغتیا:(کړغ-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ کړغتوب-
کړغ سترګے:(کړغ-ستر-ګے)اسم صفت- ډېر کمزورے- چې سترګې ئې ننوتې وی-
کړغروچ:(کړ-غروچ)اسم- واحد- مذکر- توتکه- چنغړک- مرمری-
کړغبچ:(کړ-غبچ)اسم صفت- (۱)ویرېدلے- خوف زده- وارخطا- (۲)مراوے- زمول-
کړک:(کړک)اسم- عقه- یو قسم قمیص چې لۀ ډېرو ټوکړو جوړ شوے وی-
کړک:(کړک)اسم- واحد- مذکر- د چرګې اګی بندېدنه-
کړک:(کړک)اسم- د نلونو یا لښتو نه جوړ شوے کندو- کرېکی-
کړکا:(کړ-کا)اسم صوت- د ګټو نه کړکا یا ټقونه ایستنه- (۲)د ور د تمبو د چینګاری آواز-
کړکابه:(کړ-کا-به)اسم- واحد- مؤنث- ډېره- د ایلو یو قسم-
کړکاچ:(کړ-کاچ)اسم- معامله خرابونه- پۀ خبره کښې کړچ راویستنه- کړکېچ-
کړکاچے:(کړ-کا-چے)اسم صفت- پۀ خپله خبره ټینګ- نۀ اوړېدونکے- نۀ منونکے- کړکچو-
کړکچو:(کړ-که-چو)اسم صفت- (۱)وګورئ کړکاچے- (۲)شور ماشور- ها ها-
کړکچه:(کړ-کۀ-چه)اسم- واحد- مؤنث- ها ها- شور ماشور-
کړکړ:(کړ-کړ)اسم صوت- (۱)پۀ کېده کښې د هوا چلېدو آواز- (۲)د کوزې نه د اُبو اچولو آواز- کړارے- کړار- (۳)اسم- ترټر- عبث وینا- خبرې اترې- (۴)د ایلو آواز-
کړکړی:(کړ-ک-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- کوکوشتکه- کورکوره- کوکړی-
کړکړے:(کړ-که-ړے)اسم-(۱)کړکړے- د کومی وغیره څرخ- (۲)صفت- شان و شوکت- زور و شور- درز و غپ-
کړکړے:(کړ-که-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ماشومانو یو قسم لوبه- (۲)بې اساسه څیز- (افغانستان)-
کړکوالے:(کړک-وا-لے)اسم- د چرګې د کړکېدو حالت-
کړکوړ:(کړ-کوړ)اسم صوت- د کړکړ آواز-
کړکنړے:(کړ-کن-ړے)اسم- کالکونړے- کالکونړی- وړه ایندوانه چې ترخه وی-
کړکومه:(کړ-کو-مه)اسم- واحد- مؤنث- د مارغانو د نیولو د پاره دام- لټ- لومه- پړکه- جمع کړکومې-
کړکه:(کړۀ-که)اسم صفت- واحد- مؤنث- هغه چرګه چې څو ورځې اګی نۀ اچوی- کورکه- کوړنګه- پۀ اګو ناسته چرګه-
کړکه:(کړ-که)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم واښۀ-
کړکیته:(کړ-کی-ته)اسم- واحد- مؤنث- پړکه- دام- جال- د مارغانو د نیولو پړکه-
کړکیمه:(کړ-کی-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کړکیته- کړکومه- (۲)پنجره- جمع کړکیمې-
کړکین:(کړ-کین)اسم- واحد- مذکر- تار- سپښے-
کړکېچ:(کړ-کېچ)اسم- واحد- مذکر- جنجال- رکاوټ- د خبرې نه خبره ویستنه- پړپنج-
کړکېچن:(کړ-کې-چن)اسم صفت- جنجالی- لانجه مار- هغه سړے چې هر کار کښې کړچ راولی-
کړکېچو:(کړ-کې-چو)اسم- (۱)مشکل- ناروا- غېر واضحه- (۲)فضول خبرې کونه-
کړکېچوالے:(کړ-کېچ-وا-لے)اسم- خنړوالے- کړچ پیدا کونه-
کړکېدل:(کړۀ-کې-دل)مصدر لازم- (۱)د چرګې اګی نۀ اچول- (۲)بې کاره کښېناستل-
کړکېدن:(کړۀ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړکېدل-
کړکېدنګ:(کړۀ-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړکېدل-
کړکېدنه:(کړۀ-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړکېدل-
کړکېدونکے:(کړۀ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړکېدل-
کړکېدۀ:(کړۀ-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ کړکېدل-
کړکی:(کړ-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- روشن دان- کیړکی- درڅه- دریچه- باری-
کړکی:(کړ-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- د غټو مارغانو یا ځنګلی ځناورو د نیولو د پاره دام- پړکه- جال- کړکیته-
کړکے:(کړ-کے)اسم- واحد- مذکر- قلم- نچه- ډرمه- دورمه-
کړل:(کړل)مصدر- کول- سر ته رسول- پوره کول-
کړم:(کړم)اسم- واحد- مذکر- د اُبو ډنډ- د کنده اُبو ډنډ- جمع کړمان-
کړم:(که-ړم)اسم صفت- زخمی شوے- د کاره وتلے- ګډ- خوږ- ژوبل- د زخم او پرهر پۀ وجه د کاره وتلے-
کړم:(که-ړم)اسم صفت- جنجالی (سړے)-
کړم:(کړم)فعل حال- کوم- د کړل مصدر نه فعل حال-
کړمتوب:(که-ړم-توب)اسم- د کړم کېدو حالت- وګورئ کړم-
کړمبو:(کړم-بو)اسم- هغه وړه ټوکری یا پچی چې روټی یا نور څۀ وړوکے سامان پکښې پروت وی-
کړمن:(که-ړه-من)اسم صفت- خوږ- پرېشان- کړم شوے- دړمن- دردمن-
کړمنتوب:(که-ړه-من-توب)اسم- خفګان- پرېشانی- درمندی- کړمنوالے- کړمنتیا-
کړمنتیا:(که-ړه-من-تیا)اسم- وګورئ کړمنتوب-
کړمن والے:(که-ړه-من-وا-لے)اسم- وګورئ کړمنوالے-
کړمنول:(که-ړه-مۀ-نه-ول)مصدر متعدی- دردمندول- دړمنول- پرېشانه کول- تکلیف ورکول-
کړمنون:(که-ړه-مۀ-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کړمنول-

"زبر"(غ-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "ۀ"(ړو-بې-دۀ)

کړمنونکے:(که-ړه-مۀ-نه-وُن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړمنول-
کړمنونه:(که-ړه-مۀ-نه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمنول-
کړمنېدل:(که-ړه-مۀ-نې-دل)مصدرِ لازم- پۀ تکلیف کښې مبتلا کېدل- تکلیف رسېدل- دړمندېدل-
کړموالے:(که-ړم-وا-لے)اسم- وګورئ کړمنتوب-
کړمول:(که-ړه-مه-وُل)مصدرِ متعدی- (۱)محتاج جوړول- موتازه کول- (۲)دړد رسول- (۳)غابښونو یا چړې سره غوښه پرېکول- (۴)ناکاره کول-
کړمون:(که-ړه-مه-وُن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمول-
کړمونکے:(که-ړه-مه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع کړمونکی- مؤنث کړمونکې- وګورئ کړمول-
کړمونګ:(که-ړه-مه-وُنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمول-
کړمونه:(که-ړه-مه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمول-
کړمه:(که-ړه-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه ښځه چې خاوند ئې ژوندے وی- (۲)صفت- دَ کړم مؤنث- جمع کړمې-
کړمېچن:(کړ-مې-چن)اسمِ صفت- واحد مذکر- سخامخے- پمن مخے-
کړمېدل:(که-ړه-مې-دل)مصدرِ لازم- (۱)مصیبت کښې ګېرېدل- ضرورتمند کېدل- (۲)دَ بدن دَ یوې حصې ناکاره کېدل- کنړمېدل-
کړمېدن:(که-ړه-مې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمېدل-
کړمېدنګ:(که-ړه-مې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمېدل-
کړمېدونکے:(که-ړه-مې-دُون-کے)اسمِ فاعل- جمع کړمېدونکی- مؤنث کړمېدونکې- وګورئ کړمېدل-
کړمېدنه:(که-ړه-مې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمېدل-
کړمېدۀ:(که-ړه-مې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړمېدل-
کړمېزن:(کړ-مې-زن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه سړے چې پوزه ئې مُدام دَ قنې نه ډکه وی- ګړینګن- (۲)سپک- بېکاره- نالائق- مؤنث کړمېزنه-
کړمېزه:(کړ-مې-زه)اسم- واحد- مؤنث- ګړینګ- قنے- خاړمت- خړ- خړمت- کړنګ- جمع کړمېزې-
کړن:(که-ړن)اسمِ صفت- واحد- مذکر- هواګیر چې چورلی او تاوېږی- هغه شے چې فټ نۀ وی- ډیله- ګړواز- (افغانستان)-
کړن:(کړن)حاصلِ مصدر- (۱)وګورئ کړل- (۲- اسم)کړ- کړنه- چار- چاره- عمل- کار-
کړنج:(کړنج)اسمِ صوت- دَ دوو لوښو خپلو کښې دَ جنګولو آواز- کړنج- ورکوټے آواز- چوړ- زونګه- پیچونے-
کړنجا:(کړن-جا)اسمِ صوت- دَ سلورو دَ لوښو خپلو کښې دَ جنګېدو مسلسل آواز- کړنج-
کړنچ:(کړنچ)اسمِ صوت- واحد- مذکر- کړنچهار- چوکار- چونکار- سپے چې دَ تکلیف نه غاپی-

کړند:(که-ړند)اسمِ صفت- کړن- کارکن- کار کونکے-
کړند:(که-ړند)اسمِ صفت- پرېشان- سرګردان- کړاؤ کونکے-
کړندتوب:(که-ړند-توب)اسم- پرېشانی- سرګردانی- کړندتیا- کړندوالے-
کړندتیا:(که-ړند-تیا)اسم- وګورئ کړندتوب-
کړندوالے:(که-ړند-وا-لے)اسم- وګورئ کړندتوب-
کړندول:(که-ړن-ده-وُل)مصدر- تکلیف ورکول- تنګول-
کړنده:(که-ړن-ده)اسم- وګورئ کړند-
کړندېدل:(که-ړن-دې-دل)مصدرِ لازم- تکلیف تېرول- تکلیف وچتول-
کړندېدن:(که-ړن-دې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړندېدل-
کړندېدنګ:(که-ړن-دې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړندېدل-
کړندېدنه:(که-ړن-دې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړندېدل-
کړندېدونکے:(که-ړن-دې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړندېدل-
کړندېدۀ:(که-ړن-دې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړندېدل-
کړنګ:(کړنګ)اسمِ صوت- (۱)دَ جرس آواز یا دَ څۀ څیز دَ کړنګېدو اواز- (۲)صفت- کاړینګ- کرینګے- کاڼے- بینګا- قلپ سترګے- (۳)حاصلِ مصدر دَ کړل-
کړنګار:(کړنګ-ګار)اسمِ صوت- (۱)کړنګهار- کړنګ کړونګ- (۲)دَ څۀ څیز دَ کړنګېدو آواز- (۳)انګی- دَ تمبېدو آواز-
کړنګول:(کړنګ-ګه-وُل)مصدرِ متعدی- دَ لوښو دَ جنګولو پۀ وجه آواز وېستل-
کړنګون:(کړنګ-ګه-وُن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړنګول-
کړنګونکے:(کړنګ-ګه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع کړنګونکی- مؤنث کړنګونکې- وګورئ کړنګول-
کړنګونګ:(کړنګ-ګه-وُنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړنګول-
کړنګونه:(کړنګ-ګه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړنګول-
کړنګه:(کړنګ-ګه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- کړوکه چرګه- جمع کړنګې-
کړنګه څله:(کړنګ-ګه-څۀ-له)اسم- واحد- مؤنث- سخت ساړۀ- دَ یخنۍ موسم- سخته یخنی- جمع کړنګې څلې-
کړنګېدل:(کړنګ-ګې-دل)مصدرِ لازم- دَ ګونګرو یا دَ جرس غږېدل- دَ لوښو پۀ خپلو کښې جنګېدل-
کړنګېدن:(کړنګ-ګې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړنګېدل-
کړنګېدونکے:(کړنګ-ګې-دُون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړنګېدل-
کړنګېدنګ:(کړنګ-ګې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړنګېدل-
کړنګېدنه:(کړنګ-ګې-دۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړنګېدل-
کړنګېدۀ:(کړنګ-ګې-دۀ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړنګېدل-
کړنه:(کړۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړل-
کړو:(کړو)اسمِ صفت- تېزن- نامرد- سپیرۀ مخے- تغن-
کړواس:(کړ-واس)اسمِ صفت- واحد- مذکر- وګورئ کاړساغ-

"ی" (څې-رل)، "ې"(هې-ره-وُل)، "ی"(پیا-لې)، "ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کړوب:(کړوب)اسم- واحد- مذکر- کنوبے- کړوبے- پاتې شونې ښوروا چې غوړ نهٔ لری-

کړوبړ:(کهٔ-ړو-بړ)اسم صفت- دبدبه- اخو ړب- ظاهری نمائش- طمطراق-

کړوپ:(کړوپ)اسم صفت- ټوغ- شابوکے- ړوغ- ملاټیټے- کړوپے- قُبن- قبے-

کړوپ توب:(کړوپ-توب)اسم- ټیټوالے- کوړتیا- کړوپ والے- کړوپتیا-

کړوپ تیا:(کړوپ-تیا)اسم- وګورئ کړوپ توب-

کړوپوالے:(کړوپ-وا-لے)اسم- وګورئ کړوپ توب-

کړوپول:(کړو-په-وَل)مصدر متعدی- کړول- ټیټول- کونټی کول- ټوغول-

کړوپون:(کړو-په-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کړوپول-

کړوپونکے:(کړو-په-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړوپول-

کړوپونګ:(کړو-په-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کړوپول-

کړوپونه:(کړو-په-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړوپول-

کړوپوهٔ:(کړو-په-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړوپول-

کړوپه:(کړو-په)اسم- واحد- مؤنث- دَ کجوری ازغے- دَ کجورې دَ تنې خنډ- (۲)ژوره کنده- (۳)کوړ لرګے چې سر کښې ئې لومه وی او مرغۍ پرې نیولے شی-

کړوپیش:(کړو-پیش)اسم- واحد- مذکر- کټه پیش- غټ پیش- ترینګے-

کړوپېدل:(کړو-پې-دَل)مصدر لازم- ټیټېدل- کږېدل- ټوغېدل-

کړوپېدن:(کړو-پې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کړوپېدل-

کړوپېدنګ:(کړو-پې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړوپېدل-

کړوپېدنه:(کړو-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړوپېدل-

کړوپېدونکے:(کړو-پې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړوپېدونکی- مؤنث کړوپېدونکې- وګورئ کړوپېدل-

کړوپېدهٔ:(کړو-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کړوپېدل-

کړوپے:(کړو-پے)اسم صفت- وګورئ کړوپ-

کړوتی:(کړ-وه-تی)اسم- واحد- مؤنث- دَ ولو پهٔ غاړو راشنهٔ کېدونکے واښهٔ-

کړوچ:(کړوچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کنده- خندق- (۲)کمر-

کړوس:(کړوس)اسم صوت- دَ لرګی دَ ماتېدو اواز- کړس- ټس-

کړوستی:(کړوس-تے)اسم- پړوستے- یو قسم بوټے چې پاڼې ئې دَ ګیاه پهٔ طور استعمالولے شی-

کړوسند:(کړو-سند)اسم صفت- وُچ شوے ژر ماتېدونکے لرګے- کړسند-

کړوسے:(کړ-وه-سے)اسم- واحد- مذکر- دَ نمسی خوئ- جمع کړوسی- مؤنث کړوسۍ-

کړوکے:(کړو-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ غوړو ورکوټے دېګچوټے- دېګچوړے- جمع کړوکی- (افغانستان)-

کړول:(که-ړه-وَل)مصدر متعدی- تکلیف رسول- خوړول- ربړول-

کړولے:(که-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کړولی- مؤنث کړولې- وګورئ کړول-

کړولے:(که-ړو-لے)اسم- واحد- مذکر- ناولے استعمالېدونکے لوښے-

کړومبه:(کړوم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نری ماستهٔ- (۲)بې غوړو ښوروا- جمع کړومبې-

کړومبے:(کړوم-بے)اسم- واحد- مذکر- سرپوښه وړه ټوکری- پېټار- پېټاری-

کړون:(کړون)اسم- کار- کړبار- عمل-

کړونچ:(کړونچ)اسم- دَ سپی چونکار- کوړچ-

کړونچول:(کړون-چه-وَل)مصدر متعدی- کوړنچول- دَ وهلو پهٔ ذریعه دَ سپی لهٔ خلې چونکارے ایستل- دَ سپی نه کُنوارے ایستل-

کړونچولے:(کړون-چه-وهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ کړونچول-

کړونچون:(کړون-چه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کړونچول-

کړونچونکے:(کړون-چه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړونچونکی- مؤنث کړونچونکې- وګورئ کړونچول-

کړونچونګ:(کړون-چه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کړونچول-

کړونچونه:(کړون-چه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړونچول-

کړونچېدل:(کړون-چې-دَل)مصدر لازم- کوړنچېدل- دَ وهلو پهٔ ذریعه دَ سپی لهٔ خلې چونکار ایستلے کېدل- سپے چونکلے کېدل- دَ سپی نه کُنوارے ایستلے کېدل

کړونچېدلے:(کړون-چې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کړونچېدلی- مؤنث کړونچېدلې- وګورئ کړونچېدل-

کړونچېدن:(کړون-چې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کړونچېدل-

کړونچېدنګ:(کړون-چې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړونچېدل-

کړونچېدونکے:(کړون-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړونچېدونکی- مؤنث کړونچېدونکې- وګورئ کړونچېدل-

کړونچېدنه:(کړون-چې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړونچېدل-

کړونچېدهٔ:(کړون-چې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړونچېدل-

کړونکے:(کړون-کے)اسم فاعل- کونکے- کړونے-

کړونکے:(که-ړه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړول-

کړونګه:(کړونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جړوبے- زاوو- آبشار- کړونګے- (۲)کم روغنه ښوروا- جمع کړونګې-

کړونګے:(کړونګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- (۱)آبشار- چینه- وګورئ کړونګه- (۲)دَ غوری پهٔ شان خاورین لوښے-

کړونه:(که-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړول-

کړونے:(کړو-نے)اسم فاعل- کونکے- کړونکے-

کړویزه:(کړ-وی-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړه ټوکری- (۲)دَ مقدار تول پیمانه- کړوے- کړوی- جمع کړویزې-

"زبر"(غ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "زېر"(ک-تاب)، "پېش"(نو-کا-ره)، "جزم"(شکون)، "ة"(ز-ړه)، "ۀ"(پو-بې-دهٔ)

کړوی:(کړ-وی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کړویزه-
کړوے:(کړ-وے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کړویزه-
کړه:(که-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د سرو یا سپینو زرو یو پسول- (۲)حلقه- الغه- کړی- جمع کړې-
کړه:(کړه)اسم- واحد- مؤنث- زیړ رنګ لرونکې یوه مرغۍ-
کړه:(که-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د یوې کربښه- کیل- کیله- (افغانستان)-
کړه:(ک-ړه)اسم- شپول- جل- پاره- پوله- کېږ-
کړه:(کړه)امر- کوه- وکړه- د کړل مصدر نه د امر صیغه-
کړهٔ:(کړهٔ)اسم- عمل- کار- مرضی- خوښه-
کړهٔ کاتهٔ:(کړهٔ-کا-تهٔ)اسم- (۱)شکل و شباهت- خدو خال- کړهٔ وړهٔ- (۲)کار- عمل- (۲)خوئ خصلت-
کړهٔ وړهٔ:(کړهٔ-وړهٔ)اسم- وګورئ کړهٔ کاتهٔ-
کړماند:(کړ-ماند)اسم صفت- پهٔ مصیبت کښې ګېر- سرګردان- پرېشان-
کړمو:(کړ-مو)اسم- (۱)ارکاره- (۲)ټوکری-
کړموټے:(کړو-ټے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- کړېچے- ورکوټے کړمے- وړوکے کړے- جمع کړموټي-
کړمے:(کړ-مے)اسم- واحد- مذکر- کړائے- کړے- جمع کړمي-
کړی:(که-ړي)اسم- لاوڼ- د شملو داغ- داغ کړی ماستهٔ- کاړو- لاوڼ-
کړیاب:(کړ-یاب)اسم صفت- پرېشان- خفه-
کړیتي:(کړی-تي)اسم- واحد- جمع- مؤنث- د تنزری ما...
کړیتے:(کړی-تے)اسم صفت- کړوپ- جنجوړیا- قبے-
کړیخ:(کړیخ)اسم- واحد- مذکر- کړیخۍ- کړیچ- کوړیخۍ- د څاروو د اینې یوه بیماری- (افغانستان)-
کړیڅکه:(کړی-څه-که)اسم- واحد- مؤنث- پلنې پلنې پاڼې لرونکے یو قسم بوټے-
کړیخن:(کړی-خن)اسم- هغه څاروے چې د اینې بیماری لری-
کړیخۍ:(کړی-خۍ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کړیخ-
کړیغ:(کړیغ)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ زوره چغه- کریکه- کړیغه-
کړیغه:(کړی-غه)اسم- واحد- مؤنث- کریکه- پهٔ زوره چغه- جمع کړیغې-
کړیک:(کړیک)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کریکه- کړیغه- (۲)زبېرګے- زویرکے-
کړی کالی:(که-ړی-کا-لی)اسم صفت- کړی مړی- خوروور- کړی مړی-
کړیکه:(کړی-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کړیک-
کړی مړی:(کهٔ-ړی-مهٔ-ړی)اسم- وګورئ کړی کالی-
کړینده:(کړین-ده)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)د مانده څاروی غوښه- (۲)اسم- بلغم- جمع کړیندې-
کړینګ:(کړینګ)اسم صفت- کوږ وږو- کوږ کېڼ- پهٔ ترڅ- نړینګے-
کړینګوالے:(کړینګ-وا-لے)اسم- د کړینګېدو حالت- وګورئ کړینګ-
کړنیکول:(کړینګ-که-ول)مصدر متعدی- کړول- ټيټول-

کړینګون:(کړینګ-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ کړینګول-
کړینګونکے:(کړینګ-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړینګونکي- مؤنث کړینګونکې- وګورئ کړینګول-
کړینګونګ:(کړینګ-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کړینګول-
کړینګونه:(کړینګ-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړینګول-
کړینګوهٔ:(کړینګ-که-وهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ کړینګول-
کړینګېدل:(کړینګ-ګې-دل)مصدر لازم- ټيټېدل- کږېدل-
کړینګېدن:(کړینګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړینګېدل-
کړینګېدنګ:(کړینګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړینګېدل-
کړینګېدنه:(کړینګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړینګېدل-
کړینګېدونکے:(کړینګ-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړینګېدونکي- مؤنث کړینګېدونکې- وګورئ کړینګېدل-
کړینګېدهٔ:(کړینګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ کړینګېدل-
کړېچی:(که-ړې-چی)اسم- واحد- مؤنث- توریانۍ- تورانکه- د تور رنګ یوه مرغۍ- توریانۍ- توره انا-
کړېچے:(که-ړې-چے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وړوکے کړے- کړموټے- (۲)ارکاره-
کړېڅۍ:(که-ړې-څۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ارکاره-
کړېڅۍ:(که-ړې-څۍ)اسم- جمع- مؤنث- غټه ګمڅۍ- غټه سیپۍ-
کړېدل:(که-ړې-دل)مصدر- تکلیف تېرول- خوړېدل- رنځېدل-
کړېدلے:(که-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کړېدلي- مؤنث کړېدلې- وګورئ کړېدل-
کړېدن:(که-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړېدل-
کړېدنګ:(که-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړېدل-
کړېدنه:(که-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړېدل-
کړېدونکے:(که-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړېدونکي- مؤنث کړېدونکې- وګورئ کړېدل-
کړېدهٔ:(که-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ کړېدل-
کړی:(که-ړی)اسم- جمع- مؤنث- (۱)د زنځیر کړی- (۲)د چاربېتې بند- حلقه- سلسله- پخوندے- پټېره-
کړی شپه:(که-ړی-شپه)اسم صفت- کړی شپه- درسته شپه- ټوله شپه- تمامه شپه-
کړے:(که-ړے)اسم- واحد- مذکر- د پخلی پلن او ګول لوښے- (لکه د پکوړو کړے- د ګانې کړے- د کبابو کړے- کړمے)-
کزدار:(کز-دار)اسم- واحد- مذکر- مزار- قبر- ګنبدی قبر- جمع کزدارونه-

"ئ" (ښې-رل)، "ې"(هې-ره-ول)، "ی"(پیا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کزلاخ:(کَز-لاخ)اسم- واحد- مذکر- تزلاق- برړا- جل- یو قسم مرغی-

کزلک:(کَز-لَک)اسم- واحد- مذکر- وړه کټاری- تېره چاړه- کجلوکه- کږلکه- کزلکه-

کزلکه:(کَز-لَه-کَه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری کزلک- جمع کزلکې-

کژبل:(کَژ-بَل)اسم- واحد- مذکر- مېلو- یږ- یو ځېرونکے ځناور- سائنسی نوم (SELENARCTOS THIBETANUS)-

کژبیرے:(کَژ-بی-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ ساګ یو قسم- جمع کژبیری-

کژدم:(کَژ-دَم)اسم- واحد- مذکر- لړم- یوه زهرژنه حشره- (م- فارسی)-

کژلکه:(کَژ-لَه-کَه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری کزلک-

کژلیچ:(کَژ-لیچ)اسم- واحد- مؤنث- وګوری کږلیچ-

کږ:(کَږ)اسم- واحد- مذکر- دَ ژامې اړوکے-

کږتیا:(کَږ-تیا)اسم- کوږ والے-

کږخویه:(کَږ-خو-یه)اسم صفت- (۱)تریخ- غصه ناک- (۲)نهٔ منونکے-

کږدلی:(کَږ-دَ-لی)اسم- واحد- جمع مؤنث- دَ ټکو جاله-

کږدی:(کَږ-دی)اسم- واحد- مؤنث- کېږدی- دَ کوچیانو خېمه- تمبو-

کږ ښانګه:(کَږ-ښانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- کونټی- هاکی- دَ کېند بندا- دَ توپ لرګے-

کږک:(کَه-ړَک)اسم صفت- کجک- کږه- وړه ګنډه- (۲)یو قسم کاغی-کاغه- کېشکره-کږه- کیږکه- جمع کږښانګی-

کږکه:(کَه-ړَهٔ-کَه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری کږک-

کږکے:(کَږ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کږ دَ راښپېله سره نښتے اړوکے- (۲)کانټه- دَ شولو یوه بیماری چې دانې یې توریږی-

کږل:(کَه-ړَل)مصدر- لهٔ نظره پرېوتل- پهٔ ښهٔ نظر نهٔ کتل- دَ نظره غورځېدل- رد کول- نفرت کول- ټوکل- سپېره ګڼل- پهٔ بد نظرکتل-

کږلرمې:(کَږ-لَه-رَه-مې)اسم- جمع- دَ ګنېړون یو قسم- دَ کچه کنېړون یو قسم-

کږلکه:(کَږ-لَه-کَه)اسم- واحد- مؤنث-کزلکه- چړوکی- کزلکه- وړه چاړهٔ-

کږلیچ:(کَږ-لیچ)اسم صفت- (۱)پهٔ لاره کښې کوږ والے- کوږ والے- (۲)مشکل- ګران- سخت- کژلیچ-

کږلیچه:(کَږ-لي-چه)اسم صفت- مؤنث- کږلیچ- ګنجلک- کږه وږه- تاؤ راتاؤ-

کږلیچی:(کَږ-لي-چی)اسم- (۱)پېچ وخم- کوږ والے- (۲)مشکل-

کږلے:(کَه-ړَهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کږلی- مؤنث کږلې- وګوری کږل-

کږن:(کَه-ړَن)حاصل مصدر- وګوری کږل-

کږنګ:(کَه-ړَنګ)حاصل مصدر- وګوری کږل-

کږنه:(کَه-ړَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری کږل-

کږوالے:(کَږ-وا-لے)اسم صفت- کجوالے- کوږوالے-

کږول:(کَه-ړَه-وَل)مصدر- خم اچول- راکونټی کول- (۲)غلطول-

کږولی:(کَه-ړو-لی)اسم- واحد- مؤنث- کوږ والے- کږ والے- (افغانستان)-

کږون:(کَه-ړَه-ون)حاصل مصدر- وګوری کږول-

کږونکے:(کَه-ړَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کږونکی- مؤنث کږونکې- وګوری کږل-

کږونکے:(کَه-ړَه-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کږونکی- مؤنث کږونکې- وګوری کږول-

کږونګ:(کَه-ړَه-وَنګ)حاصل مصدر- وګوری کږول-

کږونه:(کَه-ړَه-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری کږول-

کږوهٔ:(کَه-ړَه-وَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوری کږول-

کږه:(کَه-ړَه)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ کوږ مؤنث- جمع کږې-

کږه پهٔ کږه:(کَه-ړَه-پهٔ-کَه-ړَه)اسم صفت- هم هغه شان- چې کوږ پهٔ کوږ پاتې شی-

کږه وږه:(کَه-ړَه-وَه-ړَه)اسم صفت- بیخی کږه- وګوری کږه-

کږیل:(کَږ-یَل)مصدر- رد کول- کږل-

کږېدل:(کَه-ړې-دَل)مصدر لازم- (۱)راکونټی کېدل- خم پېداکېدل- (۲)ورانېدل- (۳)غلطېدل-

کږېدن:(کَه-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګوری کږېدل-

کږېدنګ:(کَه-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګوری کږېدل-

کږېدونکے:(کَه-ړې-دَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کږېدونکی- مؤنث کږېدونکې- وګوری کږېدل-

کږېدنه:(کَه-ړې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری کږېدل-

کږېدهٔ:(کَه-ړې-دَهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوری کږېدل-

کس:(کَس)اسم- واحد- مذکر- مرد- سړے- جمع کسان- (م- فارسی)-

کس:(کَس)اسم- واحد- مذکر- شولګره- اُبهٔ خوری پټی-

کُس:(کُس)اسم- دَ انسان یا ماده حیوان اندام نهانی- جمع کُسونه- (ش- فارسی- عربی- هندی)-

کس:(کَس)اسم- کز- مېده-

کس:(کَس)اسم- (۱)تانه- ژوره- کنده- (۲)کوره- دَ کسل مصدر نه امر- کسه-

کسات:(کَه-سات)اسم- قصاص- بدله- دَ چا نه بدل اخستنه- انتقام- کینه- بدل- (عامیانه)-

کساد:(کَه-ساد)اسم- دَ جنس نهٔ بدلېدنه- بازار مته کېدنه- تروټه-

کسادبازاری:(کَه-ساد-با-زا-ری)اسم- واحد- مؤنث- بازار مټه کېدنه-

کسالت:(کَه-سا-لَت)اسم صفت- سستی- ستومانی- کاهلی- ستړی کېدنه-

کسب:(کَه-سَب/کَهٔ-سَب)اسم- واحد- مذکر- هنر- پېشه- ګټنه- کار- روزګار- کاروبار- شغل- مصروفیات- مشغله- دنده- وظیفه- پېوټی-

کسبت:(کَس-بَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ نایانو دَ سامان صندوقچه-

زبر "(غ-بهٔ-ره)"، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "ه"(ز-ره)، "هٔ"(پو-هې-دهٔ)

(۲)دَ بارودو اچولو تېلی- هغه پټه چې کارتوس پکښې وي- کسوت- کسپت- تېکے-

کسبګر:(کَه-سب-ګر)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- پېشه ور- کارکونکے- دَ غم ښادۍ خبر ورکونکے- کسبه- جمع کسبګر/کسبګران-

کسبول:(کَس-به-وَل)مصدر- حاصلول- لاس ته راوړل- ترلاسه کول- (۲)جمع کول- (۳)روزی لټول-

کسبه:(کَس-به)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ کسبګر-

کسبي:(کَس-بي)اسم صفت- وګورئ کسبګر-

کُس پټاخه:(کَس-په-ټا-خه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ کسلکه- (۲)یو کنځل- جمع کس پټاخې-

کستره:(کَس-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- کستیره یو قسم بوټے چې سپین او زېړې پاڼې لري-

کستور:(کَس-تُور)اسم- واحد- مذکر- یو خوشبودار څیز- مشک- کستوره-

کستوره:(کَس-تُو-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کستور-

کستوره:(کَس-تُو-ره)اسم- واحد- مذکر- بلبل- بلُبل- (افغانستان)-

کستیج:(کَس-تیج)اسم- واحد- مذکر- دَ پرتوګ هغه ځایْ چې پکښې پرتوغاښ اچولے شي- بړه-

کس تیجه:(کَس-تی-جه)اسم- یو کنځل- جمع کُس تېجې-

کستیر:(کَس-تیر)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خوشبودار ګل-

کسر:(کَه-سر)اسم- واحد- مذکر- دَ حساب یوه طریقه-

کسر:(کَه-سر)اسم- واحد- مذکر- دَ شعر مقطع چې شاعر پکښې خپل تخلّص راولی- (۲)ختمونه- (۲)ماته- موتونه- (۴)عېب- نقص- کمے- کموالے-

کسرت:(کَس-رت)اسم- (۱)ورزش- محنت- مشقت- (۲)صفت- عیب- کمے- نقصان-

کسرمن:(کَه-سر-مَن)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر- نقصاني- کسر موندونکے-

کسره:(کَس-ره)اسم- واحد- مؤنث- زېر- دَ حرف نه لاندې علامت-

کسري:(کَس-ري)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کاسیره- زناکاره ښځه- پلیته- خرابه-

کسکر:(کَس-کر)اسم- (۱)ویلی شوې وازدې نه پاتې بګړې- چنیا- جزغاله-

کسکر:(کَس-کر)اسم صفت- (۱)سوزېدلے- وریت- سوخته- (۲)سکارهٔ- (۲)برباد- تباه-

کسکر:(کَس-کَر)اسم- واحد- مذکر- پهٔ ټکېدلو وریژو کښې ژوندی پاتې شوي ورېژه-

کسکر کسکر:(کَس-کَر-کَس-کَر)اسم صفت- ریز مریز- ښهٔ مېده شوے-

کسکرول:(کَس-کَهٔ-ره-وَل)مصدر- (۱)ریزه ریزه کول- ډېر تکلیف ورکول- (۲)سوزول- سکارهٔ کول-

کسکرون:(کَس-کَهٔ-ره-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کسکرول-

کسکرونکے:(کَس-کَهٔ-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کسکرونکي- مؤنث کسکرونکې- وګورئ کسکرول-

کسکرونګ:(کَس-کَهٔ-ره-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کسکرول-

کسکرونه:(کَس-کَهٔ-ره-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کسکرول-

کسکرېدل:(کَس-کَهٔ-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)سوزېدل- (۲)تکلیف رسېدل- (۲)مېده کېدل- (۴)وچېدل-

کسکرېدن:(کَس-کَهٔ-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کسکرېدل-

کسکرېدنګ:(کَس-کَهٔ-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کسکرېدل-

کسکرېدنه:(کَس-کَهٔ-رې-دَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کسکرېدل-

کسکرېدونکے:(کَس-کَهٔ-رې-دَون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کسکرېدونکی- مؤنث کسکرېدونکې- وګورئ کسکرېدل-

کسکرېدهٔ:(کَس-کَهٔ-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کسکرېدل-

کسکړ:(کَس-کَړ)اسم صفت- دَ کسکر عامیانه لفظ- وګورئ کسکر-

کسړي:(کَس-ړي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټوکری-

کس کول:(کَس-که-وَل)مصدر- ګلکول- راکښل- ترل- ښکېلول- ګېرول-

کسکے:(کَس-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ کُس اسم تصغیر- وګورئ کُس-

کسل:(کَسل)مصدر- کتل- کورل- لیدل-

کسلکه:(کَس-له-که)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)ډېر شهوت لرونکې ښځه- کُس پټاخه- کُس نېغه- کُسی- (۲)یو کنځل- جمع کُسلکې-

کسل:(کَه-سَل)اسم- (۱)ستوماني- کاهلي- سستي- (۲- صفت)ناراسته- ستړے- ستومانه- مرېز (م- عربي)-

کسلے:(کَسهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ کسل ۱-

کسم:(کَ-سَم)اسم- واحد- مذکر- یو بوټے چې ډېر ښائسته ګلونه نیسي- کسمبه-

کسمبه:(کَ-سَم-به)اسم- وګورئ کسم-

کس ناکس:(کَس-نا-کَس)اسم- واحد- مذکر- خپل پردے- غېر غماز- څوک ناڅوک- دربېمګړے-

کسنه:(کَسهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کسل-

کسوت:(کَس-وَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)لباس- پوشاک- جامه- جمع کسوتونه- (م- عربي)-

کسوف:(کُ-سُوف)اسم- (۱)دَ نمر تندر نیونه- تندر- (۲)بدحالي- (م- عربي)-

کسوک:(کَس-وَک)اسم- واحد- مذکر- ارکړه- کاکړه- لاکړه کاکړه- دَ دانو یوه بیماري-

کسونکے:(کَسُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کسل-

کسه:(کَه-سه)اسم- واحد- مؤنث- غُښت- ارمان- آرزو- مراد- خوښي-

کسه:(کَهٔ-سه)امر- وګورئ کسل- ګوره-

کسي:(کَسي)اسم- واحد- مؤنث- دینار-

کسي:(کَهٔ-سي)دَ کسل نه فعل حال- ګوري-

کسي:(کَهٔ-سي)اسم- جمع- مذکر- دَ سترګې جلی- دَ سترګې زېزمه- لېمهٔ-

دَ سترګو غاړې- ککی-

کسیا:(کس-یا)اسم- (۱)ګردو غبار- (۲)مېده- رېزه- (کول/کېدل مصدرونه)-

کسیره:(که-سی-ره)اسم- واحد- مؤنث- پېسه- دَ زړې زمانې یوه معمولی سکه- دمړی- کاسیره-

کسې:(کَ-سې)اسم صفت- واحد/جمع- مؤنث- (۱)کُس ورکړې- (۲)یو کنځل-

کسی:(که-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ککی- (۲)دَ دوه غرونو په مینځ کښې شنه او مېدانی علاقه- وادی-

کش:(کَش)اسمْ- (۱)راکښنه- (۲)دَ چیلم ښښنه- (۲)اَخرې- (۴)دَ اسم نه پس په راتلو دَ فاعل معنیٰ ورکوی لکه مے کش-

کش:(کُش)لاحقه- چې دَ اسم نه پس راشی نو فاعل ترې جوړکړی- لکه جراثیم کُش- (م- فارسی کشتن)-

کش:(کَش)اسم صوت- دَ پښو آواز- دَ تلو آواز- کش کړپ-

کشا:(کَه-شا)اسم صوت- دَ کش کش اواز- کشار-

کشاده:(کُ-شا-ده)اسم صفت- وسیع- فراخ- ارت بېرت- ویر-

کشار:(کَه-شار)اسم صوت- وګورئ کشا-

کشاف:(کَش-شاف)اسم صفت- ظاهر کوُنکے- پېدا کوُنکے- ظاهرونکے-

کشاکش:(که-شا-کَش)اسم- (۱)ځکول راځکول- (۲)تکلیف- مصیبت- ترېسکه-

کشال:(که-شال)اسم صفت- (۱)خوړند- آویزاند- (۲)کشاله- لانجه- (فارسی)-

کشاله:(که-شا-له)اسم- واحد- مؤنث- تنازعه- معامله- اړه- جنجال- جمع کشالې-

کشان:(که-شان)اسم صفت- (۱)راکښلے- (۲)راکښونکے- (۳)ازاد- بېرته-

کشانش:(که-شا-نش)اسم- په روزګار کښې زیاتوالے- په رزق کښې فراحی- رښانی- (م- فارسی)-

کشب:(کشب)اسم- مېچنې- شمشتې- کاتلے- شکرتانے- کاله ګړب- کشو- کاسه ګړب- سکو- کشوه- یوآبی ښناور چې په وچه مم پانی- کشپ- کشف- (م- عربی- کشف)-

کشپ:(کشپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ- کشب-

کش پش:(کَش-پِش)اسم- (۱)معمولی کار- (۲)په نازړه کارکونه-

کشت:(کشت)اسم- واحد- مذکر- قسط- کمیټی- مقرره رقم په مقرره وخت کښې ورکونه- (عامیانه)

کشت:(کشت)اسم- واحد- مذکر- (۱)فصل- کرلے شوے ځیز- (۲)پټے- (۲)آخری-

کشت:(کشت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ شطرنج دَ بادشاه نامه- (۲)دَ مقابلې لوبغاړی ته دَ هغهٔ دَ باشاه راګېرېدو خبردارے-

کشتاد:(کَش-تاد)اسم صفت- (۱)وژلے شوے- قتل شوے- (۲)دَ قصابانو په اصطلاح کښې حلاله- (م- کشتن فارسی)-

کشتره:(کش-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- زیړ رنګ لرونکے یو ګل- کستره- کستیره-

کشتری:(کشت-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټوکری- شکری-

کشترېدل:(کشت-رې-دل)مصدر- کښېناستل-

کشترېدن:(کشت-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کشترېدل-

کشترېدنګ:(کشت-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کشترېدل-

کشترېدونکے:(کشت-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کشترېدل-

کشترېدهٔ:(کشت-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کشترېدل-

کشت زار:(کشت-زار)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کر زمکه- پټے- (۲)کرونده- کر- کرلے فصل-

کشتګان:(کُش-ته-ګان)اسم صفت- جمع- مذکر- کشتنی- وژلی شوی- (۲)شهیدان-

کشتن:(کُش-تن)اسم- مړکول- قتل کول- وژل- (وهل)-

کشتنی:(کُش-ته-نی)اسم صفت- (۱)وګورئ کشتګان- (۲)دَ وژلو قابل-

کشت و کار:(کشت-و-کار)اسم- واحد- مذکر- (۱)کار روزګار- دنده- شغل- مشغولا- کار کسب- (۲)زمیداره- کرنه-

کشته:(کُش-ته)اسم صفت- (۱)قتل شوے- وژلے شوے- (۲)یوه حکیمی دوائی-

کشتی:(کُش-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ملکانو دَ پرخونو یوه لوبه- ۲)دَ دوو پهلوانانو خپلو کښې زور ازمائینه-

کشتی:(کش-تې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کیمه- ژاله- پلانده- لوئ ماکو- بېړی- دَ اَبو جاله- غراب- کښتی-

کشخولے:(کش-خو-لے)اسم- واحد- مذکر- بوُړے-

کشر:(کهٔ-شر)اسم صفت- وړوکے- کم عمره- دَ مشر ضد- جمع کشران-

کشرتوب:(کهٔ-شر-توب)اسم- کشرتیا- په عمر کښې کمېدنه- کشروالے-

کشرتیا:(کهٔ-شر-تیا)اسم- وګورئ کشرتوب-

کشروالے:(کهٔ-شر-وا-لے)اسم- کشرتوب-

کشروټے:(کش-رو-ټے)اسم تصغیر- دَ کشر دَ پاره دَ تصغیر په توګه استعمالېدونکے تورے- دَ کشر اسم تصغیر- کشرے- وړوکے-

کشروکے:(کش-رو-کے)اسم- واحد- مذکر- شکرے- شکروټے-

کشری:(کهٔ-شهٔ-ری)اسم- (۱)کم عمره- (۲)کم عمری-

کشری:(کش-ری)اسم- واحد- مؤنث- یوه وړه خوږ آوازه مرغی- کنری- غراره-

کشرین:(کش-رین)اسم صفت- کمترین- لهٔ ټولو نه لږ- وړ- ډېر وړوکے-

کشری:(کش-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ټوکری-

کشری:(کهٔ-شهٔ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- په ټولو وروڼو خوېندو کښې کم عمره جینی-

کشرے:(کشه-رے)اسم- واحد- مذکر- شکروټے- وړوکے شکور- شکرے-

کشرے:(کهٔ-شهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ عمر په لحاظ په کور کښې دَ ټولو نه کشر- مؤنث کشری- جمع کشری-

کشړوپ:(کش-ړوپ)اسم صفت- کړشپ- بې غاښو-

کشش:(کہ-شش)اسم- دَ راکښلو قوت- راکښنه- (م- فارسي)-

کشف:(کہ-شَف/کشف)اسم- ظاهرونه- ښکاره کونه-

کشف:(کشف)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کشب-

کشک:(کَ-شک)اسمِ صفت- واحد- مذکر- (۱)پاسوان- پاسبان- څوکیدار- (۲)اسم- مؤنث- پاسباني- څوکیداري-

کشک:(کُشک)اسم- واحد- مذکر- محل- ماڼي- (م- فارسي)-

کشک:(کُ-شک)اسم- کروت- بګوړه- یو قسم خشک پنیر-

کشکاب:(کش-کاب)اسم- دَ اُربشو دَ اوړو اتوب- لیټي-

کشکارل:(کش-کا-رل)مصدر- دَ حملي دَ پاره سپے تیارول-

کشکارلے:(کش-کا-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کشکارلي- مؤنث کشکارلې- وګورئ کشکارل-

کشکارن:(کش-کا-رن)حاصل مصدر- وګورئ کشکارل-

کشکارنګ:(کش-کا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ کشکارل-

کشکارنه:(کش-کا-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کشکارل-

کشکچي:(کش-کہ-چي)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ کلي څوکیدار-

کشکره:(کش-کہ-ره)اسم- واحد- مؤنث- بوربي- مککه- ګیرکه- یوه مشهوره مرغۍ-

کش کړپ:(کش-کړپ)اسمِ صوت- (۱)کشارے- کش پش- کش وکړپ- ښکالو- کش کوش- دَ حرکت اواز- چغه ایستنه- (۲)کار- معمولي کار-

کشکش:(کش-کش)اسم صوت- دَ تلو راتلو آواز-

کشکل:(کش-کل)اسم- (۱)چرغزے- یوه مرغۍ- (۲- صفت)بې- کنجے- (افغانستان)-

کشکو:(کش-کو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کشکوړے-

کشکوړي:(کش-کو-ړي)اسم- واحد جمع- مؤنث- بوجه-

کشکوړے:(کش-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- آفتابه- چرخیره- ځښځوړے- چښکوړے- ځښکوړے- مښوکه- کشکو- چمچوري- کښکوړے- خُلۀ- دَ چانټک یا کوزې مښوکه- کشکول-

کش کوش:(کش-کوش)اسمِ صوت- کش پش- کش وکړپ- کش کش- کشار- کش کړوپ-

کشکول:(کش-کول)اسم- واحد- مذکر- (۱)کچکول- (۲)چښکوړے- کشکوړے- ځښکوړے-

کشکول:(کش-کہ-وَل)مصدر متعدي- راکاږل- راکښل- راځکول-

کشکولے:(کش-کہ-وۀ-لے)اسم مفعول- وګورئ کشکول-

کشکون:(کش-کہ-ون)حاصل مصدر- وګورئ کشکول-

کشکونکے:(کش-کہ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کشکونکي- مؤنث کشکونکې- وګورئ کشکول-

کشکونګ:(کش-کہ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کشکول-

کشکونه:(کش-کہ-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کشکول-

کشکوۀ:(کش-کہ-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ کشکول-

کشکینه:(کش-کي-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ اُربشو دَ ړوړي اوګره- جمع کشکینې-

کشکي:(کش-کي)کلمه- کاشکي- کشکه- دَ ارمان او افسوس کلمه-

کشکېدل:(کش-کې-دل)مصدر- (۱)ښوئېدل- حرکت کول- لړزېدل- کشېدل- (۲)قلم کېدل- (۳)پرېښودل-

کشکېدلے:(کش-کې-دۀ-لے)اسم مفعول- وګورئ کشکېدل-

کشکېدن:(کش-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کشکېدل-

کشکېدنګ:(کش-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کشکېدل-

کشکېدنه:(کش-کې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کشکېدل-

کشکېدونکے:(کش-کې-دون-کے)اسم فاعل- وګورئ کشکېدل-

کشکېدۀ:(کش-کې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ کشکېدل-

کشکے:(کش-کے)اسم- واحد- مذکر- ټغر چې دَ بار تړلو دَ پاره دَ باری خاروی پۀ ملا اچولے شي-

کشمالو:(کش-ما-لو)اسم- واحد- مذکر- یو خوشبودار بوټے- نیازبو- ریحان- بوبرے- ببرے- کشمالے- کشمالي- نباتاتي نوم اوسیمم بیسیلیکم (OCIMUM BASILICUM)-

کشمالي:(کش-ما-لي)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کشمالو-

کشمالے:(کش-ما-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کشمالو-

کشمش:(کش-مش)اسم- مویز- وڅکي- وچ انګور چې خاص قسم لري-

کشمش خانه:(کش-مش-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ځائې چې کشمش پکښې جوړولے شي-

کشمکش:(کش-مه-کش)اسم- واحد- مذکر- کړکیچ- لانجه- جنجال-

کشمیره:(کش-مي-ره)اسم- واحد-مؤنث- یو قسم توره کپړه- جمع کشمیرې-

کشمیرے:(کش-مي-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ یو ګل نوم- (۲)دَ کشمیر وسېدونکے- (۳)ټماټر- جمع کشمیریان-

کشو:(کَ-شو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کشب- (م- عربي- کشف)-

کشور:(کش-وَر)اسم- واحد- مذکر- مُلک- ولایت- اقلیم- (م- فارسي)-

کشول:(کہ-شه-وَل)مصدر- راکښل- خان پله راوستل-

کشوه:(کش-وه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کشب- (م- عربي- کشف)-

کشهار:(کہ-شه-هار)اسم صوت- کشار- کشارے- دَ پښو ښکالو-

کشهارے:(کہ-شه-ها-رے)اسم صوت- غژهارے- غژهار- دَ کش کش آواز-

کشه کرپه:(کہ-شه-کړه-پہ)اسم مرکب- (۱)ونج رپار- لبن دبن- کار روزګار- (۲)کشارے- ښکالو- کش کړپ-

کشي:(کہ-شي)اسم- دَ اُسپنې ټوټه-

کشیاشد:(کہ-شي-با-شد)اسم- هر څوک چې وي- (افغانستان)-

کشیده:(کہ-شي-ده)اسم- (۱)رنګینه تارونو سره پۀ کپړو کار- (۲)آراسته- (۳)موزون- (۴)راکښلے- (۵)چکن-

ئ (ښي-رل)، ې(هې-ره-وَل)، ی(پیا-لي)، ے(تن-دےے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کښيده کارى:(که-شى-ده-کا-رى)اسم- پهٔ کپړه يا لرګى ګل بوټى جوړونه- (م- فارسى)-

کښيک:(که-شيک)اسم صفت- واحد- مذکر- څوکيدار- پاسبان-

کښېدل:(کهٔ-شې-دل)مصدر لازم- لهٔ خايه غلے شان وتل- پاڅېدل- تلل-

کښېدلے:(کهٔ-شې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کښېدلى- مؤنث کښېدلې- وګورئ کښېدل-

کښېدن:(کهٔ-شې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کښېدل-

کښېدنګ:(کهٔ-شې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کښېدل-

کښېدنه:(کهٔ-شې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښېدل-

کښېدونکے:(کهٔ-شې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کښېدونکى- مؤنث کښېدونکې- وګورئ کښېدل-

کښېدهٔ:(کهٔ-شې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کښېدل-

کښے:(که-شے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مور پلار يو خوئ-

کښ:(کښ)اسم- (۱)لينده- (۲)ستَ بلنه- (۳)کُش- راکښنه-

کښاکل:(کښا-کل)مصدر- (۱)کاږل- (۲)رټل- (افغانستان)-

کښانـد:(کـه-ښـانـد)اسـم- (۱)پـهٔ زمکـه دَ راکـښلـى شـوى څيـز نـښـه- (۲- صفت)کښانده-

کښانده:(که-ښان-ده)اسم صفت- فکرمند- پرېشان- کښاند-

کښـايـل:(کـښـا-يـل)مـصـدر- افـطـار کـول- دَ روژې مـاتـول- (خـلاصـول)- (افغانستان)-

کښت:(کښت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غرونو کورواله- (۲)شيره- (۳)فصل- کر- کرکيله- کرونده- زميندارى- (۴)دَ آخرت دَ پاره په دنيا کښې نېک عمل کونه-

کښت کر:(کښت-کر)اسم صفت- زميندار- دهقان- بزګر- کښت کونکے- کرونده ګر-

کښتل:(کښ-تل)مصدر- ننويستل- (افغانستان)-

کښته:(کښ-ته)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وچه کړې خوبانى- جمع کښتې-

کښته:(کښه-ته)اسم/صفت- مؤنث- لاندې- ټيټ- کوز-

کښته پورته:(کښه-ته-پور-ته)اسم- ټيټ پاس- کوز پاس- لاندې باندې-

کښتى:(کښ-تى)اسم- دَ کر لائق-

کښکرکے:(کښ-کر-کے)اسم صفت- وګورئ کښکرے-

کښکرے:(کښ-کهٔ-رے)اسم صفت- وچ- کسکر- کښکرکے- (افغانستان)-

کښکل:(کښ-کل)مصدر- ښکل- کاږل- ليکل- (افغانستان)-

کښکو:(کښ-کو)اسم- دَ شرابو پياله- پيک- کښکوله- (افغانستان)-

کښکوړے:(کښ-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- څښکوړے- مښوکه- سنت- دَ چائ جوش يا چائنيک خُلهٔ- کشکوړے- څښکوړے-

کښکول:(کښ-که-ول)مصدر- غبېول- پټول- کشول- غايبول- ښونيول- پناکول-

کښکوله:(کښ-کو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کښکو-

کښکولے:(کښ-کو-لے)اسم- واحد- مذکر- شوقله- قوشقلے- پرچوڼے- دَ جوار دَ وږى پوستکے-

کښکون:(کښ-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ کښکول-

کښکونکے:(کښ-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کښکونکى- مؤنث کښکونکې- وګورئ کښکول-

کښکونګ:(کښ-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کښکول-

کښکونه:(کښ-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښکول-

کښکوهٔ:(کښ-که-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کښکول-

کښکے:(کښ-کے)اسم صفت- څښے- کښهار- دَ څهٔ څيز دَ راکښلو آواز- لهٔ څهٔ څيزه اواز ايستنه- پهٔ مزه مزه اواز-

کښکى:(کښ-کى)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم زهريله بوټے چې څاروى ئې وخورى نو مړ شى-

کښکے:(کښ-کے)اسم صفت- ښکالو لرونکے-

کښل:(کښل)مصدر (۱)ليکل- درج کول- ښکل- کښلول- (۲)بوسه اخستل- (۲)الرې کول- رابهرته وېستل-

کښلول:(کښه-له-ول)مصدر- ښکلول- کوکې اخستل-

کښلے:(کهٔ-ښه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کښلى- مؤنث کښلې- وګورئ کښل-

کښن:(کهٔ-ښن)حاصل مصدر- وګورئ کښل-

کښندرے:(که-ښند-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه کوږ لرګے چې بار پرې کلکولے شى- (۲)موږے-

کښندے:(کهٔ-ښن-دے)اسم- واحد- مذکر- بزګر- دهقان-

کښنګ:(کهٔ-ښنګ)حاصل مصدر- وګورئ کښل-

کښنه:(کهٔ-ښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښل-

کښوايل:(کښوا-يل)مصدر- پرانستل- امام له دَ قرات پهٔ وخت فتح ورکول يا غښتل-

کښوتل:(کښ-وه-تل)مصدر- بوختېدل- پرې اوړېدل- لاندې وتل- اخته کېدل-

کښوره ناک:(کښو-ره-ناک)اسم صفت- ښوره ناک- مالګين- تيرو- (افغانستان)-

کښه:(که-ښه)اسم- واحد- مؤنث- تړون- تړنى- وندنے- لانګه- پيازمه- جوړا- جفت- قلبه- اړوان- لنګه- کوزسر- دَ کټ پښو تړلے شوے پړے- چې تړول کټ پرې راکښلے او کلکولے شى- (افغانستان)-

کښه:(که-ښه)اسم- واحد- مؤنث- خاربنت- کهه- خاربن- ګرېدنه- جمع کښې-

کښه:(که-ښه)اسم- واحد- مؤنث- وړينه ترنګړ-

کښې:(کښې)حرف جار- ننه- دننه-

کښې:(کښې)متعلق فعل- له ښکته مخه- له کوزې خوا- دَ غرب ضد- (۲)ورېدلے-

کښې ايستل:(کښې-ايس-تل)مصدر- (۱)اخته کول- کېرول- (۲)پهٔ غم اړول-

(۳)ننه اېستل- (۴)راښکته کول- راغرځول-

کښېړ اېستلے:(کښېړ-اېس-تهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کښېړ اېستلي- مؤنث کښېړ اېستلې- وګورئ کښېړ اېستل-

کښېړ اېستن:(کښېړ-اېس-تن)حاصل مصدر- وګورئ کښېړ اېستل-

کښېړ اېستنګ:(کښېړ-اېس-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ کښېړ اېستل-

کښېړ اېستنه:(کښېړ-اېس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښېړ اېستل-

کښېپاسل:(کښېړ-با-سل)مصدر- راغرځول- راپرځول- لاندې کول-

کښېپاسلے:(کښېړ-با-سهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کښېپاسلي- مؤنث کښېپاسلې- وګورئ کښېپاسل-

کښېپاسن:(کښېړ-با-سن)حاصل مصدر- وګورئ کښېپاسل-

کښېپاسنګ:(کښېړ-با-سنګ)حاصل مصدر- وګورئ کښېپاسل-

کښېپاسنه:(کښېړ-با-سهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښېپاسل-

کښېپاسونکے:(کښېړ-با-سون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کښېپاسونکي- مؤنث کښېپاسونکې- وګورئ کښېپاسل-

کښېختل:(کښېړ-خه-تل)مصدر- (۱)خړېدل- شرمنده کېدل- شرمېدل- (۲)کښېکښل- (افغانستان)-

کښېختلے:(کښېړ-خه-تهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کښېختلي- مؤنث کښېختلې- وګورئ کښېختل-

کښېختن:(کښېړ-خه-تن)حاصل مصدر- وګورئ کښېختل-

کښېختنګ:(کښېړ-خه-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ کښېختل-

کښېختنه:(کښېړ-خه-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښېختل-

کښېختونکے:(کښېړ-خه-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کښېختونکي- مؤنث کښېختونکې- وګورئ کښېختل-

کښېختهٔ:(کښېړ-خه-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کښېختل-

کښېښودل:(کښېړ-ښو-دل)مصدر- کېښودل د کښېښول عامیانه قرأت-

کښېمنډل:(کښېړ-من-ډل)مصدر- په زور ځاې کول- منډل- زور کول- نوک سوک ډکول-

کښېمنډلے:(کښېړ-من-ډهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کښېمنډلي- مؤنث کښېمنډلې- وګورئ کښېمنډل-

کښېمنډن:(کښېړ-من-ډن)حاصل مصدر- وګورئ کښېمنډل-

کښېمنډنګ:(کښېړ-من-ډنګ)حاصل مصدر- وګورئ کښېمنډل-

کښېمنډنه:(کښېړ-من-ډهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښېمنډل-

کښېمنډونکے:(کښېړ-من-ډون-کے)اسم فاعل- جمع کښېمنډونکي- مؤنث کښېمنډونکې- وګورئ کښېمنډل-

کښېناستل:(کښېړ-ناس-تل)مصدر- په زمکه د پښو په سر کُناتے لګول-

کښېنول:(کښېړ-نه-ول)مصدر- په کښېناستو مجبورول-

کښېوتل:(کښېړ-وه-تل)مصدر- اخته کېدل- لاندې وتل- بوخت کېدل-

کښېوتلے:(کښېړ-وه-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کښېوتلي- مؤنث کښېوتلې- وګورئ کښېوتل-

کښېوتن:(کښېړ-وه-تن)حاصل مصدر- وګورئ کښېوتل-

کښېوتنګ:(کښېړ-وه-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ کښېوتل-

کښېوتون:(کښېړ-وه-تون)اسم- وګورئ کښېوتل-

کښېوتونکے:(کښېړ-وه-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کښېوتونکي- مؤنث کښېوتونکې- وګورئ کښېوتل-

کښېوتنه:(کښېړ-وه-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کښېوتل-

کښېوتهٔ:(کښېړ-وه-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کښېوتل-

کښے:(که-ښے)اسم- واحد- مذکر- د پټي څوکیدار-

کښے:(کښے)اسم- د باران ورېدنه-

کعبه شریفه:(کع-به-شه-ري-فه)اسم- واحد- مؤنث- د خداې کور- هغه پاک ځاې چې ټول مسلمانان ورته په نمانځهٔ کښې مخ ګرځوي- (م- عربي)-

کغ:(کغ)اسم صوت- د نیولو په وخت د چرګ آواز- تغ-

کغا:(کهٔ-غا)اسم صوت- د مرې بندېدو مسلسل آواز- کغار-

کغاچ:(که-غاچ)اسم- (۱)مخالفت- (۲)لباس کښې نابرابرے- (۳)درې ګټېز-

کغاچتوب:(که-غاچ-توب)اسم صوت- وګورئ کغاچ-

کغاچول:(که-غا-چه-ول)مصدر- (۱)کږول- (۲)مخالفول- مخالف کول- (۳)غلطي کول-

کغاچونه:(که-غا-چه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کغاچول-

کغاچي:(که-غا-چي)اسم صفت- جنجالي- لانجه مار-

کغار:(که-غار)اسم صوت- وګورئ کغا-

کغر:(که-غر)اسم صفت- چغر- کاڼے-

کغن:(که-غن)اسم صوت- (۱)لهٔ مرې ورو ورو وتونکے آواز- (۲)ړوغن- ژړن- ژړندوکے-

کغنده:(که-غن-ده)اسم- واحد- مؤنث- یو مشهور مارغهٔ- زانه- زانې-

کغول:(کهٔ-غه-ول)مصدر- په کغ کغ آواز اېستلو مجبورول- په ناکاره خبرو لګیاکول-

کغون:(کهٔ-غه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کغول-

کغونکے:(کهٔ-غه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کغول-

کغونګ:(کهٔ-غه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کغول-

کغونه:(کهٔ-غه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کغول-

کغوهٔ:(کهٔ-غه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کغول-

کغېدل:(کهٔ-غې-دل)مصدر لازم- د چرګانو د نیوو په وخت لهٔ مرې آواز وتل-

کغېدن:(کهٔ-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کغېدل-

کغېدنګ:(کهٔ-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کغېدل-

کغېدنه:(کهٔ-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کغېدل-

کغېدونکے:(کهٔ-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کغېدل-

کغېدهٔ:(کهٔ-غې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کغېدل-

"ئ" (ځې-ړل)، "ې"(هې-ره-ول)، "ې"(پیا-لې)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کف:(کَف)اسم- (۱)دَ لاس او پښې تلے- (۲)ځګ- (۳)دَ لستونی خله چې تنې پکښې لګېدلی وی-

کف:(کُف)اسمِ صفت- سیال- برابر- (م- عربی)-

کف:(کُف)اسم- چُف- دم اچونه- چُف کونه-

کفار:(کُ-فار)اسم- جمع- دَ کافر جمع- وګورئ کافر- (م- عربی)-

کفارت:(که-فا-رَت)اسم- عوض- بدله- کفاره- هغه خېرات وغېره چې دَ ګناهونو دَ ختمولو پهٔ عوض کښې ورکولے کیږی- (م- عربی)-

کفاره:(که-فا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ګناه بدله- بدله- جمع کفارې- (م- عربی)-

کفاف:(که-فاف)اسم- دَ ورځې پوره راتب- روزینه- (م- عربی)-

کفالت:(که-فا-لَت)اسم- ضمانت- ذمه داری- (م- عربی)-

کفانهٔ:(که-فا-نهٔ)اسم- واحد- مذکر- کفن چې " پهٔ " یا " دَ " پرې راشی نو کفانهٔ ترې جوړ شی-

کفایت:(کِ-فا-یَت)اسم- کافی- پوره- نفع- (م- عربی)-

کفایت شعار:(کِ-فا-یت-شه-عار)اسمِ صفت- کم خرڅ کونکے- بچت کونکے- (م- عربی)-

کفایت شعاری:(کِ-فا-یَت-شه-عا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ کفایت شعار عمل- (م- عربی)-

کفتار:(کَف-تار)اسم- واحد- مذکر- یو ماتُونکے ځناور- کوړ- لېوګـنه- سرکوزے-

کفتره:(کَف-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- کونتره- کمتره- کوتره- جمع کفترې- (م- فارسی)-

کفچمار:(کَف-چه-مار)اسم- واحد- مذکر- یو ډېر زهریلا مار- زهر لرونکے ځناور- چمچمار-

کفر:(کُفر)اسم- واحد- مذکر- انکار- دَ خدایْ پاک نهٔ منـنه- دَ اسلام پهٔ ضد دَ مرې لار او قانون ناشکری- (م- عربی)-

کفرار:(کَف-رار)اسمِ صفت- ځګڑن- ځګ لرونکے-

کفران:(کُف-ران)اسم- واحد- مذکر- ناشکری-

کفش:(کَفش)اسم- څپلی- کېړی- پېزار- (م- فارسی)-

کفګیر:(کَف-ګیر)اسم- واحد- مذکر- تمامکش- دَ بټیارانو دَ وریژو را ایستو آله- (م- فارسی)-

کفن:(که-فَن)اسم- واحد- مذکر- مړی ته اَغستې شوې کپړه- جمع کفنونه-

کفن دفن:(که-فَن-ده-فَن)اسم- تجهیز و تکفین- ګور و کفن- دَ مړی ښخونه-

کفن کښ:(که-فَن-کَښ)اسمِ صفت- (۱)لهٔ مړی کفن ویستونکے- (۲)ظالم- مؤنث کفن کښه- جمع مؤنث کفن کښې-

کفیل:(کَ-فیل)اسم- (۱)ضامن- (۲)ذمه داری منـنه- ذمه دار جوړېدنه- (م- عربی)-

کک:(کَک)اسم- (۱)ځس- خسنے- سپک- (۲)لږ شے- (۳)یو قسم مرغی-

کک:(کَک)اسم- مذکر- دَ ګړې ټینګ شربت- کرېړے-

ککا:(که-کا)اسم- (۱)کاکے- ماشوم- ککے- (۲)کاکا- ترهٔ-

ککاو:(که-کاو)اسم- یو قسم وُنه چې غټې پلنې پاڼې لری او دَ لړګی رنګ يُ سور وی-

ککر:(کِ-کر)اسمِ صفت- (۱)یخ- (۲)کسکر-

ککرناکه:(که-کرَ-نا-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ چرګې یو قسم چې کلکې اګی يُ دَ جنګولو دَ پاره پکارولے شی-

ککره:(کَک-ره)اسم- واحد- مؤنث- غټه کپړه-

ککره:(که-کهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ ککری اسم تصغیر- وګورئ ککری-

ککره:(کَک-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ تلو راتلو دَ پاره پکارونکے تیر چې دَ پُل دَ پاسه پروت وی-

ککریزه:(کَک-ری-زه)اسمِ صفت- موره- چک- کنګل- جمع ککریزې-

ککری:(کَک-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ موتیازو دَ پوُکنۍ کاڼے- ککره-

ککری:(که-که-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کوپړی- کوپری- دَ سر کاسه-

ککرے:(کُک-رے)اسم- واحد- مذکر- کوترے- دَ سپی وړوکے بچے- جمع ککری- مؤنث ککری-

ککړ:(که-کړ)اسمِ صفت- (۱)شرپسند- جګړمار- جګړاؤ- بې عزته شوے- بدنام شوے- خراب شوے- لړلے- داغدار- آلوده- ناولے- ابته- ګنده- مُردار- تـتړ- پلیت- خیچن- (۲)خوش طبیعته سړے- خوش باش-

ککړ پکړ:(که-کړ-په-کړ)اسم صفت- ناولے- آلوده- ابته- ګنده-

ککړتوب:(که-کړ-توب)اسم- ککړوالے- ککړتیا- لوندوالے- وګورئ ککړ-

ککړتیا:(که-کړ-تیا)اسم- وګورئ ککړتوب-

ککړوالے:(که-کړ-وا-لے)اسم- وګورئ ککړتوب-

ککړول:(که-کهٔ-ړه-وَل)مصدر- (۱)لوندول- (۲)څوک پهٔ جرم کښې راګېرول- (۳)خرابول-

ککړون:(که-کهٔ-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ککړول-

ککړونکے:(که-کهٔ-ړه-وُون-کے)اسمِ فاعل- جمع ککړونکی- مؤنث ککړونکې- وګورئ ککړول-

ککړونګ:(که-کهٔ-ړه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ککړول-

ککړونه:(که-کهٔ-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ککړول-

ککړه:(که-کهٔ-ړه)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- دَ ککړ مؤنث- ناکاره او بد کاره ښځه- (۲)ابته- لړلې- جمع ککړې-

ککړه:(که-کهٔ-ړه)اسمِ صوت- واحد- مؤنث- دَ زرکې یا چرګې آواز- چکړه- جمع ککړې-

ککړے:(کَک-ړے)اسمِ صفت- (۱)شریر- فسادی- شېطانت کونکے- (۲)لړلے- حبطه- ابته-

ککړېدل:(که-کهٔ-ړې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)لوندېدل- (۲)ابته کېدل- ناولے کېدل- (۳)بدنامېدل- (۴)پهٔ جرم کښې راګېرېدل- (۵)خرابېدل-

زبر "(غَ-بـهٔ-ره)، "زورکے" (ښَل)، "پېش" (نُو-کا-ره)، "زېر" (کِ-تاب)، "جزم" (شکوْن)، "ه" (زَ-ړه)، "هٔ" (ډو-بې-دهٔ)

ککړېدلے:(که-کهٔ-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ککړېدلی- مؤنث ککړېدلې- وګورئ ککړېدل-

ککړېدن:(که-کهٔ-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ ککړېدل-

ککړېدنګ:(که-کهٔ-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ککړېدل-

ککړېدنه:(که-کهٔ-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ککړېدل-

ککړېدونکے:(که-کهٔ-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع ککړېدونکی- مؤنث ککړېدونکې- وګورئ ککړېدل-

ککړېدهٔ:(که-کهٔ-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ککړېدل-

ککوټے:(که-کو-ټے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- کبکا- کاکے- وړوکے ملک- جمع ککوټی- مونث ککوټې-

ککوړے:(که-کو-ړے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- (۱)وړه پوړی- (۲)چکلی- (۳)ریکاړې- (۴)کلچه- جمع ککوړی-

ککوړے:(که-کو-ړے)اسم- څکونړاره- (افغانستان)-

ککوړے:(که-کو-ړے)اسمِ صفت- (۱)ماشوم ته دَ مینې خطاب- (۲)زلمیتوب ته نژدې ملک- (اسم)-

ککوشته:(کَ-کُوش-ته)اسم- واحد- مؤنث- ککوشتکه- کورکوړه- یوه مرغی-

ککونا:(که-کو-نا)اسم- (۱)وړوکے ملک- (۲)دَ مینې تورے- (۳)نیازبین ملک- ککونے-

ککونې:(که-کو-نې)اسم- واحد جمع- مؤنث- ککې- وړه جینۍ-

ککونے:(که-کو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ککونا-

ککوے:(که-کهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- ټټارے- ټوټېل- ټټوے- یو مارغهٔ چې نرۍ نرۍ او وړې وړې پښې ئې وی او پهٔ باران کښې آوازونه کوی-

ککې:(که-کې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)دَ سترګو تور- (۲)وړه جینۍ- کوکۍ-

ککے:(که-کے)اسم تصغیر- کاکے- وړوکے ملک-

کګ:(کګ)اسم- واحد- مذکر- څپیاکه- غوشوے-

کګچ:(که-ګچ)اسم- واحد- مذکر- بدی- ستم- ورانے- ستم ظرینی-

کګره:(کَګ-ره)اسم- کَرل- کنګل- دَ ابو دَ سر دپاسه جوړ شوے یخ-

کل:(کَل)اسمِ صفت- خرنیلے- تراشلے شوے-

کل:(کَل)اسمِ صفت- کنجے- پک- (م- فارسی)-

کل:(کُل)اسم صفت- تمام- ټول- (م- عربی)-

کل:(کَل)اسم- پرانستے- آزاد-

کلاب:(کَ-لاب)اسم- دَ کلب جمع- سپی-

کلابه:(کُ-لا-به)اسم- واحد- مذکر- قلبه- جمع کلابې-

کلاچ:(کَ-لاچ)اسم- دَ دواړو لاسونو دَ غوړېدو ترمینځه فاصله- دا دَ پیمائش یوه قدرتی ذریعه ده- (افغانستان)-

کلاحاشا:(که-لا-حا-شا)متعلق فعل- قطعاً- (افغانستان)-

کلاغ:(کُ-لاغ)اسم- واحد- مذکر- کارغهٔ-

کلاغے:(کَ-لا-غے)اسم- واحد- مذکر- څپوټکے- مچک- دَ سترګو ټرلو رومال- سرپیچک-

کلاکچے:(که-لا-کهٔ-چے)اسم- واحد- مذکر- شوتے پڼړا- ابس پڼړی- شوتی ډمبک- پڼړاګولی-

کلال:(کَ-لال)اسم- واحد- مذکر- کولال- دَ خاورو لوښی جوړونکے- جمع کلالان-

کلال:(کَ-لال)اسم- شراب جوړونکے او خرڅونکے- (م- هندی)-

کلاله:(کُ-لا-له)اسمِ صفت- واحد- مذکر- بې وروره او بې خوره سړے-

کلالی:(کَ-لا-لی)اسم- دَ کلال کار-

کلالے:(کَ-لا-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ کبانو دَ نیولو خنجک- کنډهٔ-

کلام:(کَ-لام)اسم- واحد- مذکر- (۱)تقریر- خبره- (۲)شعر-

کلام پاک:(که-لا-م-پاک)اسم صفت- دَ خدائې تعالیٰ خبرې- قرآن شریف-

کلان:(که-لان)اسمِ صفت- غټ- بزرګ- لوئې- لوئې سړے-

کلانتر:(که-لان-تر)اسم- محله دار- دَ محلې یا کَندی مشر-

کلان کار:(که-لان-کار)اسمِ صفت- خان لوئې ګڼونکے- خان منونکے- چالاک-

کلانکاری:(که-لان-کا-ری)اسم- دَ کلانکار جوړېدو حالت- چالاکی- عیآری-

کلاه:(کُ-لاه)اسم- واحد- مذکر- قوله-زلاړه ټوپی- (م- فارسی)-

کلاوه:(کَ-لا-وه)اسم- واحد- مؤنث- دَ تارونو ګونجی- اټه- ماشله- ماشوړه- جمع کلاوې-

کلاوه:(کَ-لا-وه)اسم- واحد- مؤنث- وریت- لولپه- نینې-

کلانی:(کَ-لا-نی)اسم- قلنی- یو قسم دهات-

کلانی:(که-لا-نی)اسم- دَ وریژو مسورو یا داسې نورو څیزونو نه خاشې بوشې یا خاوره ویستنه-

کلایین:(که-لا-یین)اسمِ صفت- کلانی کړے شوے-

کلب:(کَلب)اسم- واحد- مذکر- سپے- جمع کلاب- (م- عربی)-

کلپ:(کَلپ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بت چې دوبیان ئې کپړو ته ورکوی-

کلپ:(کَلپ)اسم- واحد- مذکر- قلف- ژرنده- تاله- جمع کلپونه-

کلپول:(کَل-په-ول)مصدر- بندول- دَ یو بل سره یوځائې کول- ژرنده کول- (م- قلف- عربی)-

کلپون:(کَل-په-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ کلپول-

کلپونکے:(کَل-په-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع کلپونکی- مؤنث کلپونکې- وګورئ کلپول-

کلپونګ:(کَل-په-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کلپول-

کلپونه:(کَل-په-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کلپول-

کلپوهٔ:(کَل-په-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ کلپول-

کلپېدل:(کَل-پې-دل)مصدر لازم- بندېدل- ژرنده کېدل- دَ یو بل سره یو ځائې کېدل-

ئ" (ځی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لی)، ے"(تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کلپېدن:(کُل-پې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کلپېدل-

کلپېدنګ:(کُل-پې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کلپېدل-

کلپېدنه:(کُل-پې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کلپېدل-

کلپېدونکے:(کُل-پې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کلپېدونکی- مؤنث کلپېدونکې- وګورئ کلپېدل-

کلپېدهٔ:(کُل-پې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کلپېدل-

کلپی:(کُل-پی)اسم- واحد- مذکر- دَ اخښلو شوو اوړو دَ اېښودو لوښے- کُلپی-

کلپی:(کل-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ کلپی-

کلت:(کَلت)اسم- دَ مسورو پهٔ شان یو دال چې پخولے شي-

کلجو:(کَل-جَو)اسم- دَ جوارو یو قسم-

کلجوش:(کَل-جوش)اسم صفت- دَ کُروتو ښوروا- دُ قروتو لاوږ-

کلچ:(کَلَچ)اسم- دَ خاورو وړلو بوره- هغه بوره چې خاوره پکښې وړلے شي- تراوه-

کلچر:(کُل-چِر)اسم- تهذیب- تمدّن- ثقافت- (م- انګریزی)-

کلچه:(کُل-چه)اسم- (۱)غوړه روټۍ- کولچه- څوکی- انغسه- خوشخمیره- جمع کلچې- (م- فارسی)-

کلچنېز:(کُل-چه-نېز)اسم صفت- (۱)کلچه پخونکے- (۲)کلچې ته ورته- (م- فارسی)-

کلخواکی:(کُل-خوا-کی)اسم- واحد- مؤنث- وفاداری- تابعداری- (افغانستان)-

کلغه:(کُل-غه)اسم- واحد- مؤنث- کرغه- وچوبی- وُچه بې وښو زمکه- جمع کلغې-

کلف:(کَلف)اسم- (۱)دَ مخ تور تور داغونه- (۲)یو قسم بُت چې کپړو ته زرکولے شي- (م- عربی)-

کلفت:(کُل-فت)اسم- واحد- مذکر- غم درد- تکلیف- بدنصیبی- بې ارامی- (م- عربی)-

کلفی ستن:(کُل-فی-سَتن)اسم- واحد- مؤنث- بکسوه- هغه ستن چې شلېدلے قمیص یا ګرېوان پرې راجختولے شي-

کلک:(کلک)اسم- واحد- مذکر- قلم- جمع کلکونه- (م- فارسی)-

کلک:(کَلک)اسم صفت- مضبوط- سخت- محکم- ټینګ- د سست او شوړ بوږ ضد- تېز-

کلک اړک:(کَلَک-اَ-ړک)اسم صفت- واحد- مذکر- ضدی- خېلی- سرکښه- سرکشه- اړی مار-

کلک ازغے:(کَلَک-از-غے)اسم- واحد- مذکر- خنې- جمع کلک ازغی-

کلک بریز:(کَلَک-بَ-ریز)اسم- دَ کچه غرمې او غرمې ترمینځه وخت- (افغانستان)-

کلک پلک:(کَلَک-پَلَک)اسم صفت- وګورئ کلک-

کلکتوب:(کَلَک-توب)اسم- مضبوطوالے- سخت والے- کلکتیا- کلکوالے-

کلکتیا:(کَلَک-تیا)اسم- وګورئ کلکتوب-

کلک زړے:(کَلَک-زهٔ-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)سنګدل- بې ترسه- پهٔ زړهٔ سخت- بې رحمه- (۲)خیګرور- زړهٔ ور-

کلک سترګے:(کَلَک-سَتر-ګے)اسم صفت- ګستاخ- بې شرمه- بې حیا- اړا- سپین سترګے- هغه څوک چې سترګو نه يُ دَ شرم اُبهٔ تویې شوی وی-

کلکل:(کَل-کَل)اسم- واحد- مذکر- شور و غوغا- بې مقصده خبرې- بکواس- بې واره خبرې- پهٔ یو مخ پهٔ خبرو لګیا کېدنه-

کلکلے:(کَل-که-لے)اسم- واحد- مذکر- چاپېرچل- (افغانستان)-

کلکوالے:(کَلَک-وا-لے)اسم- وګورئ کلکتوب-

کلکول:(کَله-که-وَل)مصدر- سختول- مضبوطول- پخول- ټینګول-

کل کول:(کُل-کول)اسم- ټول پهٔ جمع- ټول پهٔ ټول- (افغانستان)-

کلکون:(کَله-که-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کلکول-

کلکونکے:(کَله-که-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کلکونکی- مؤنث کلکونکې- وګورئ کلکول-

کلکونګ:(کَله-که-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کلکول-

کلکونه:(کَله-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کلکول-

کلکوهٔ:(کَله-که-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کلکول-

کلکه:(کَله-که)اسم صفت- مضبوطه- سخته- دُ کلک مؤنث-

کلکین:(کَل-کین)اسم- واحد- مذکر- روشندان- کړکۍ-

کلکېدل:(کَله-کې-دَل)مصدرِ لازم- (۱)سختېدل- مضبوطېدل- ټینګېدل- (۲)مقابله کول-

کلکېدن:(کَله-کې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کلکېدل-

کلکېدنګ:(کَله-کې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کلکېدل-

کلکېدنه:(کَله-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کلکېدل-

کلکېدونکے:(کَله-کې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کلکېدونکی- مؤنث کلکېدونکې- وګورئ کلکېدل-

کلکېدهٔ:(کَله-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کلکېدل-

کلکۍ:(کَل-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ورکوټے کلے- (۲)دَ بوسو سخے- کلګۍ-

کلګۍ:(کَل-ګۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)ککری- (۲)دَ بوسو سخے- کلکۍ-

کلل:(که-لَل)مصدر- ګزکول- مېچول- ناپول- پېمانش کول- کچ کول- (افغانستان)-

کلوت:(کَل-وَت)اسم- واحد- مذکر- دَ مار دَ خُلې څګ-

کلونکے:(که-لوَن-کے)اسم فاعل- جمع کلونکی- مؤنث کلونکې- وګورئ کلل-

کلماغ:(کَل-ماغ)اسم صفت- (۱)مکېزن- پهٔ نازو ادا تلونکے- خرامان-

(۲)قلماق- دَ ترکانو یوه قبیله چي دَ ظلم دَ پاره مشهوره ده- مؤنث کلماغه- جمع کلماغې- (افغانستان)-

کلمه:(کَل-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه معنی لرونکے لفظ چي لهٔ خُلې وځی- جمع کلمې/کلمات- (م- عربی)-

کلمه ولي:(کُل-مه-وَ-لي)اسم- واحد- مؤنث- یوه خېله چي پهٔ داروُ کښې پکاریږی- ګلو-

کلن:(کَ-لَن)اسم صفت- کال- دَ عمر دَ عدد سره راوستونکے تورے- لکه لس کلن- (افغانستان)-

کلنج:(کَ-لَنج)اسم- قلنج- دَ کېډې دَ درد بیماری-

کلنجار:(کَلَن-جار)اسم- واحد- مذکر- کنجیور- کونی کبر- یوه اُبی حشره-

کلند:(کَلَند)اسم- واحد- مذکر- کودالي- کوداله- سسکوره- تسکوره-

کلنګ:(کَ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- جهیز- اختراج- تېکس- خرڅ- جمع کلنګونه-

کلنګ:(کَ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ډېر سپین- تک سپین- لټ سپین- بیخی سپین- (۲)دَ چرې دار تېوپک هغه پُرزه چي ټوپک پرې ډکولے شي-

کلنګ:(کَ-لَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)یوه مشهوره مرغی- (۲)زانه- سائنسی نوم انتروپائډس ورګو (ANTHROPOIDUS VIRGO)-

کلنګک:(کَلَن-ګک)اسم صوت- چقرې- دَ چېلی یا پسهٔ دَ مستی پهٔ وخت کښې آواز-

کلنګي:(کَ-لَنګ-ګي)اسم- واحد- مذکر- دَ ځنګلي چرګانو یو قسم چي دَ جنګ دَ پاره ساتلے شي-

کلنه:(که-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری کلل-

کلنے:(که-له-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ یو کال- جمع کلنی-

کلنے:(که-له-نے)کلمه- دَ کوم وخت- مؤنث کلنې-

کلواڅه:(کَل-وا-څه)اسم- واحد- مؤنث- خون بها- هغه څیز چي مقتول ته دَ قاتل لهٔ خوا ورکولے شي- بدله-

کلواړ:(کَل-واړ)اسم- واحد- مذکر- وګوری کلواړه-

کلواړه:(کَل-وا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کرواړه- دَ ربیلی فصل نه پاتې وری وغېره چي غریبانان خلق يې ټولوی-

کلوت:(کَلوت)اسم- تورغونے- توربخن- سکڼ- سکاڼ-

کلوچ:(کَلوچ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سوزېدلې روټی- بهېدلې روټی- (۲)ګونجې- بدرنګ- (۳)دَ بوټانو یو قسم- کلوشې-

کلوچول:(کَلو-چه-وَل)مصدر- ګونجې کول- تاؤ راتاؤ کول- ګنجلک کول-

کلوچون:(کَلو-چه-وَن)حاصل مصدر- وګوری کلوچول-

کلوچونکے:(کَلو-چه-وون-کے)اسم فاعل- جمع کلوچونکی- مؤنث کلوچونکې- وګوری کلوچول-

کلوچونګ:(کَلو-چه-وَنګ)حاصل مصدر- وګوری کلوچول-

کلوچونه:(کَلو-چه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری کلوچول-

کلوچوهٔ:(کَلو-چه-وهٔ)حاصل مصدر- وګوری کلوچول-

کلوچېدل:(کَلو-چې-دل)مصدر لازم- (۱)ګونجې کېدل- تاؤ راتاؤ کېدل- ړنجلک کېدل- (۲)دَ بهېدلې روټی سوزېدل-

کلوچېدن:(کَلو-چې-دَن)حاصل مصدر- وګوری کلوچېدل-

کلوچېدنګ:(کَلو-چې-دَنګ)حاصل مصدر- وګوری کلوچېدل-

کلوچېدنه:(کَلو-چې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری کلوچېدل-

کلوچېدونکے:(کَلو-چې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کلوچېدونکی- مؤنث کلوچېدونکې- وګوری کلوچېدل-

کلوچېدهٔ:(کَلو-چې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګوری کلوچېدل-

کلوښته:(کَلوښ-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کلکوتی وېښتهٔ- (۲)یو قسم چابک- (۳)دَ وښو پولی- (۴)دَ سپېنسو دومره مقدار چي رسی ترې جوړه شي- جمع کلوښتې-

کلوښته:(کَلوښ-ته)اسم صفت- دلګیر- خفه- اوربوز بوټے- پرېشان- بوټ سوټ-

کلول:(که-له-وَل)مصدر- خرول- خرېیل- وېښتهٔ اخستل- سر ګنجے کول-

کلول:(که-لَول)اسم- باګړی- لوبیا- دَ دالو یو قسم- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وګوری کرخه-

کلون:(که-له-وَن)حاصل مصدر- وګوری کلول-

کلونکے:(که-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کلونکی- مؤنث کلونکې- وګوری کلول-

کلونه:(که-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری کلول-

کلوله:(که-لو-له)اسم صفت- ګلوله- غنډ منډ- جمع کلولې-

کلومیټر:(کَ-لو-می-ټر)اسم- واحد- مذکر- دَ یو مقام نه تر بل مقامه پورې دَ فاصلې دَ پېمائښ یوه پېمانه چي دَ زرو میټرو برابر وی- (م- انګریزی)-

کله:(که-له)متعلق فعل- کوم وخت-

کله:(که-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ سر پښو پخکړے- (۲)ککری-

کله پاچه:(کَه-له-پا-چه)اسم- واحد- مؤنث- سر پښې- دَ غوږ بزو یا غوا مېښې سر او څلور واړه پښې پهٔ یو ځای پخ شوی-

کله شولا کله:(که-له-شو-لا-که-له)متعلق فعل- چي پهٔ یوه خبره یا یو کار ډېره موده واوړی-

کله کله:(که-له-که-له)متعلق فعل- شاذو نادر- یونیم وخت- ځنې ځنې وخت- بعضې وخت- کله نا کله-

کله ماغے:(که-له-ما-غے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)بې مغزو- چې پهٔ سر کښې يې مازغهٔ نهٔ وی- (۲)خردیما- کم عقل- بې سوچه- ناپوهه-

کله نا کله:(که-له-نا-که-له)متعلق فعل- وګوری کله کله-

کلهم:(کُل-هُم)صفت/متعلق فعل- ټول- درست- ثابت- پوره پهٔ پوره-

ي (څي-رل)، ي (مي-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګوری تشریحات صفحه ۱

ټول ټال- بیخی- زاړه- تمام- په هېر- لهٔ سپلمې- امانی- ګړد- مکمل- پوره- ټول په ټول-

کلیجی:(که-لی-جی)اسم- واحد- مؤنث- دَ اینې پښتورګی پخکړے-

کلی رد:(کهٔ-لی-رَد)اسم صفت- ناخوشه- ناپسنده- کلی ردّ کړے- بې دستوره سړے-

کلید:(که-لیدْ)اسم- واحد- مذکر- چابی- کُنجی- (م- عربی)-

کلیدی:(که-لی-دی)اسم- (۱)دَ کلید سره متعلق- (۲)اهم- وګورئ کلید-

کلیز:(که-لیز)صفت- (۱)دَ یو کال- (۲)دَ کال سره تعلق لرونکے- مؤنث کلیزه-

کلیم:(که-لیمْ)اسم صفت- (۱)خبرې کونکے- (۲)دَ موسیٰ علیه السلام لقب- کلیم الله- (م- عربی)-

کلیم الله:(که-لی-مل-لا)اسم صفت- وګورئ کلیم-

کلین:(که-لینْ)صفت- (۱)سالانه- کلیز- (۲)دَ کال سره متعلق-

کلیوال:(کهٔ-لی-وال)اسم صفت- دَ کلی وسېدونکے- جمع کلیوالان-

کلیوالی:(کهٔ-لی-وا-لی)اسم- وروروِلی- دَ کلی په مناسبت یو بل سره دوستی او رشته لرنه-

کلیه:(کُ-لی-یه)اسم- واحد- مؤنث- قانون- قاعده- جمع کلیې- (م- عربی)-

کلېچ:(کلېچْ)اسم- واحد- مذکر- ډېر تاؤ لرونکی رسی-

کلېچول:(کلې-چه-وَل)مصدر- رسی ته ډېر تاؤ ورکول-

کلېچون:(کلې-چه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ کلېچول-

کلېچونکے:(کلې-چه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کلېچونکی- مؤنث کلېچونکې- وګورئ کلېچول-

کلېچونګ:(کلې-چه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کلېچول-

کلېچوهٔ:(کلې-چه-وَهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کلېچول-

کلېچېدل:(کلې-چې-دَل)مصدر لازم- دَ رسی ډېر تاؤ خوړل- کلېچ پیدا کېدل-

کلېچېدلے:(کلې-چې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کلېچېدلی- مؤنث کلېچېدلې- وګورئ کلېچېدل-

کلېچېدن:(کلې-چې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کلېچېدل-

کلېچېدنګ:(کلې-چې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کلېچېدل-

کلېچېدنه:(کلې-چې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کلېچېدل-

کلېچېدونکے:(کلې-چې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کلېچېدونکی- مؤنث کلېچېدونکې- وګورئ کلېچېدل-

کلېچېدهٔ:(کلې-چې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کلېچېدل-

کلینج:(که-لینج)اسم- (۱)دَ مارغانو بچی چې تازه تازه پرې بڼې راختلی وی-

کلینچی:(که-لین-چی)اسم صفت- هغه کونتر چې په وزر کښې ئې څو بڼې دَ خپل رنګ نه مختلفې وی-

کلی:(کَ-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- غټی- شګوفه- پچی-

کلی:(کَ-لی)اسم- (۱)کنجی- چابی- (۲)دَ کوترو یا نورو مارغانو دَ بڼو وبخونه- (۳)بوری-

کلے:(کهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- ګڼ کورونه- ګڼه ابادی- جمع کلی-

کم:(کم)اسم صفت- وړوکے- کم اصله- کم بخت- کم عمر- ناکافی- نایاب- کمزورے- کشر- دَ ډېر ضد-

کماچو:(کَ-ما-چُو)اسم- واحد- مذکر- کچماچو- یو قسم ساګ- نباتاتی نوم سپلې نم نیګرم (SALANUM NIGRUM)-

کماچی:(که-ما-چی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کچه ګټه- کچنه ګټه-

کماحقه:(کَ-ما-حَ-قه)متعلق فعل- څرنګه چې حق لری- (م- عربی)-

کم اختر:(کَم-اَخ-تَر)اسم- وړوکے اختر- دَ روژې اختر- (افغانستان)-

کم اصل:(کَم-اَ-صل)اسم صفت- کمینه- چې اصل ئې ښهٔ نهٔ وی- جمع کم اصلان-

کمال:(کَ-مال)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوره کېدنه- (۲)هنر- قابلیت- (۳)چل- ترکیب- (۴)معجزه- کرامت- (۵)خوبصورتی- (م- عربی)-

کمالدار:(کَ-مال-دار)اسم صفت- کمال لرونکے- کمالی- مؤنث کمالداره- وګورئ کمال-

کمالی:(که-ما-لی)اسم صفت- وګورئ کمالدار-

کمامت:(که-ما-مَت)اسم- کموالے- کمونه- کمے- قحط-

کمان:(که-مانْ)اسم- واحد- مذکر- دَ غشی لیندهٔ- جمع کمانونه- (م- فارسی)-

کمانچه:(که-مان-چه)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- (۱)وړوکې لیندهٔ- (۲)دَ رباب دَ غږولو آله- جمع کمانچې-

کمان کښے:(که-مان-کهٔ-ښے)اسم صفت- لیندهٔ چلونکے- غشے ویشتونکے- تیرانداز- جمع کمان کښی-

کمان ګر:(که-مان-ګر)اسم- واحد- مذکر- کمان جوړونکے- دَ ماتو هډوکو پیوندونکے-

کمانی داره:(کَ-ما-نی-دا-ره)اسم صفت- محراب داره- کمانی لرونکې-

کمانی:(کَ-ما-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ اسپنې ولداره او پېچداره حلقه- (۲)سپرنګ-

کمانی:(کَ-ما-نی)اسم- واحد- مؤنث- ګټه- آمدن- (م- هندی)-

کمایه:(کَ-ما-یه)اسم صفت- (۱)کمینه- کم اصل- بد اصل- (۲)سپک ډولے-

کمبار:(کَم-بار)اسم- واحد- مذکر- کمپار- کولال- دَ لوښو جوړولو کار کونکے- جمع کمباران-

کمباری:(کَم-با-ری)اسم- کولالی- دَ کلال پېشه-

کمبالی:(کَم-با-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بامیلکی- یوه حشره- کمبلی- وګورئ قران پاڼه-

کم بخت:(کَم-بَخت)اسم صفت- بد نصیبه- کم نصیبه- بد قسمته- مؤنث کم بخته-

کم بختي:(کَم-بَخ-تي)اسم- واحد- مؤنث بد بختي- بد نصیبي-

کمبرې:(کَم-به-رې)اسم- نارنجي- دَ نارنج پهٔ شان رنګ لرونکې-

کمبری:(کَم-به-رې)اسم- واحد- مذکر- دَ نارنج وَنه او دَ هغې مېوه- جمع کمبرې- نباتاتي نوم سټرس میډیکا (CITRUS MEDICA)-

کمبل:(کَم-بل)اسم- واحد- مذکر- وړین ګرم څادر- کمبله- جمع کمبلونه-

کمبله:(کَم-به-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کمبل- جمع کمبلې-

کمبلې:(کَم-به-لې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ قرآن پاڼه-

کمبلی:(کَم-به-لی)اسم صفت- وړه کمبله-

کمبوت:(کَم-بوت)اسم صفت- کمې- نیمګړتیا- حاجت- ضرورت- رغېدنه- کمبود-

کمبود:(کَم-بود)اسم- وګورئ کمبوت-

کمبودي:(کَم-بو-دي)اسم- واحد- مؤنث- کمې- نیمګړتیا-

کمبه:(کَم-به)اسم- واحد- مؤنث- خمبه- امبار خانه- جمع کمبې-

کمبېله:(کَم-بې-له)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم دوائي- کامبېله- دَ نباتاتي نوم دَ پاره وګورئ کامبېله-

کمپار:(کَم-پار)اسم- واحد- مذکر- جمع کمپاران- مؤنث کمپاره- وګورئ کمبار-

کم پایه:(کَم-پا-یه)اسم صفت- کم اصل- کمتر- سپک- ادنیٰ- لاندې- کوز- ښکته-

کمپوډر:(کَم-پو-ډر)اسم- واحد- مذکر- دَ ډاکټر معاون- جمع کمپوډران- (م- انګریزي)-

کمتر:(کَم-تر)اسم صفت- نسبتاً- کم- وګورئ کم-

کمتره:(کَم-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کونتره- فاخته- کوړکوړی- (۲)پوڅکۍ- (۳)پهٔ یوې کښې دَ موټې دَ پاسه هغه لرګې چې زمیندار پرې لاس ایښې وي- جمع کمترې-

کم ترین:(کَم-ته-رین)اسم صفت- لهٔ ټولو کم- وګورئ کم-

کم ترې:(کَم-ترې)اسم- جمع- مؤنث- بوڅکۍ- (افغانستان)-

کم توان:(کَم-توان)اسم صفت- ناتوان- کمزورې- کم طاقته- لاغر-

کمتیا:(کَم-تیا)اسم- لږوالې- کم والې-

کمچه:(کَ-مهٔ-چه)اسم- (۱)خچنه- خچه- کچنه- کچه- (۲)څکېز- اوڅکېز- ستنې- سدام- (افغانستان)-

کمچه ګته:(کَ-مهٔ-چه-ګَ-ته)اسم- واحد- مؤنث- کچه ګته- خچه ګته- جمع کچې ګتې-

کمچینه:(کَم-چی-نه)اسم- واحد- مؤنث- تازیانه- کوړه- چابک- چمکینه- (افغانستان)-

کمڅېرې:(کَم-څې-رې)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مارغهٔ- جمع کمڅېرې-

کم خرڅه:(کَم-خر-څه)اسم صفت- کم خرڅ کونکې- جمع کم خرڅې-

کم خواب:(کَم-خواب)اسم- واحد- مذکر- یو قیمتي ښکلې کپړه-

کم خوراکه:(کَم-خو-را-که)اسم صفت- لږ خوړونکې- جمع کم خوراکې-

کم دلیل:(کَم-د-لیل)اسم صفت- کم پوهه- ناپوهه-

کمر:(که-مر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سیند اوچته غاړه- غنډې- لوړ ځاې- (۲)غټ کانې- (۳)خټ-

کمر:(کَ-مر)اسم- برګ آس- تور او سپین آس- ابلق- کمره- (م- فارسي)-

کمربند:(کَ-مر-بند)اسم- واحد- مذکر- ملابند- ملاوستنې- دَ ملا تړلو پټۍ- پېټۍ-

کمرغالې:(که-مر-غا-لې)اسم- واحد- مذکر- سمڅه- غار- دَ کمر سُورې- جمع کمرغالې-

کمرک:(کَم-رک)اسم- واحد- مذکر- یو بې پاڼو ازغن بوټې چې کچه دانې ئې ترخې او پخې دانې خوړې وي- نباتاتي نوم ایورکا کارمبولا (AVERRHCH CARAMBOLA)- (م- هندي)-

کمرکس:(که-مر-کس)اسم صفت- ملا تړلې- تکړه- تیار- کمرکښ-

کمرکه:(کم-ره-که/کَ-ما-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- توږې- الماری- جمع کمرکې- (افغانستان)-

کمره:(کَم-ره)اسم- واحد- مؤنث- کوټه- دَ ملاستې ځاې- جمع کمرې-

کمره:(که-مه-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نکاح شوې ښځه- (۲)یو قسم سبزي- جمع کمرې-

کمری:(کَ-م-ری)اسم صفت- واحد- مذکر- چې دَ ملا کُب ئې راوتې وي- شابوتې- شاټبې- ټېټا-

کمرې:(کَ-مه-رې)اسم- جمع- کمرونه- لوړ ځایونه- خندقونه-

کمرې:(کَ-مه-رې)اسم- دَ وریژو یا شولو پوستکې(پوټکې)-

کم زړې:(کَم-زړې)اسم صفت- واحد- مذکر- بې زړهٔ- ویرېدونکې-

کمزور:(کَم-زور)اسم صفت- کمزورې- ناتوان- ټپ ټېپ- کم طاقته-

کمزورې:(کَم-زو-رې)اسم صفت- واحد- دَ کم زور خاوند- جورمل- خرړ- ړنګر- ډبرې- کم طاقته- کم قوته- جاړنګ- ناتوان- خوار- ټپ- خوارکې- جمع کمزورې-

کم سارې:(کَم-سا-رې)اسم- واحد- مذکر- کم سوره- کم بره- هغه څیز چې بر یا عرض یا پلنوالې ئې کم وي-

کمشر:(کَم-شر)اسم صفت- ایمن- غریب-

کم شمېره:(کَم-شمې-ره)اسم صفت- پهٔ شمېر کښې کم- پهٔ تعداد کښې کم- لږ-

کمښت:(کَ-مښت)اسم- واحد- مذکر- (۱)کموښت- کمې- لږوالې- (۲)کوږ والې- قُب راوتنه-

کم طاقته:(کَم-طا-قه-ته)اسم صفت- وګورئ کمزورې-

کم عقل:(کَم-عه-قل)اسم صفت- بې وقوف- نادان- ناپوهه- جاهل- اړبنګ- جمع کم عقلان-

کم عقل تیا:(کَم-عه-قل-تیا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کم عقلي- ناپوهي-

نادانی- بوله توب- ساده توب- (۲)بې وقوفي-

کم عقلی:(کم-عق-لي)اسم- واحد- مؤنث- خرخاری- بې وقوفي- نادانی-

کم علمه:(کم-عل-مه)اسم- اخون- کم علم لرونکے- دَ کم علم خاوند-

کم غوالے:(کم-غوا-لے)اسم- واحد- مذکر- میرخُمن- دشمن- دښمن- (افغانستان)-

کم قوته:(کم-قو-و-ته)اسم صفت- وګورئ کمزورے-

کم قیمته:(کم-قی-مه-ته)اسم صفت- ارزان- کم بیعه- چې قیمت ئې ډېر یا ګران نهٔ وی- (م- فارسی)-

کمک:(کُ-مک)اسم- کومک- مدد- مرسته- امداد- (م- فارسی)-

کم کبلے:(کم-کب-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ موسی وړوکے بچے- کم پهٔ معنی دَ وړوکی استعمال دے-

کم کم:(کم-کم)اسم صفت- کوم کوم- کوم یو- مر یو-

کم کوترے:(کم-کوت-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ سپی وړوکے بچے- (افغانستان)-

کمکوټے:(کم-کو-ټے)اسم- واحد- مذکر- ورکوټے- وړوکے- کم عمره- جمع کمکوټی-

کم کوز:(کم-کوز)اسم- واحد- مذکر- یو نیم- ډېر کم- خال خال- شازونادر- کله کله- چې موندل ئې ګران وی-

کمکی:(کم-کي)اسم- کوچنی- وړوکی-

کمکیتوب:(کم-کی-توب)اسم- وړوکوالے- وړوکتوب- کمکینه-

کمکینه:(کم-کی-نه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کمکیتوب-

کمکئ:(کم-کئ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ کمکی مؤنث- وګورئ کمکے-

کمکے:(کم-کے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے- ورکوټے- کشر- دَ کم عمر- جمع کمکی- مؤنث کمکئ-

کمکے:(کُ-مه-کے)اسم صفت- مددګار- امدادی- کمک کونکے- ملاتړ- جمع کمکی-

ـمکوټے:(کم-کو-ټے)اسم صفت- واحد- مذکر- کمکوټے- وړوکے- کم عمره- جمع کمکوټی-

کملی:(کم-لي)اسم- واحد- مؤنث- ښځه ښځه چې دوه کسه پرې دعوېدار وی او دریم کس ته وادهٔ شی-

کمن:(کُ-من)اسم صفت- پېږے- خازه- مړاوے- کمڼ- باسی- وچ- (افغانستان)-

کمند:(کُه-مند)اسم- (۱)دَ بره ختلو دَ پاره پکارونکے پړے- (۲)تېزندي- (م- فارسی)-

کمندرے:(کُ-من-درے)اسم صفت- واحد- مذکر- مندرے- مدرے- دَ وړوکی قد لرونکے- جمع کمندری-

کمنګر:(که-من-ګر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کمانګر-

کمڼ:(کُ-مڼ)اسم صفت- ممڼ- جنجڼ- مړاوے- کمن- (افغانستان)-

کمڼتوب:(که-مڼ-توب)اسم- کمڼوالے- مړاوېتوب- دَ مړاوی کېدو حالت-

کمڼ والے:(کُ-مڼ-وا-لے)اسم- وګورئ کمڼتوب-

کمڼول:(که-مهٔ-ڼه-ول)مصدر- مړاوے کول- وچول- باسی کول- کړول- زمیرول-

کمڼون:(که-مهٔ-ڼه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کمڼول-

کمڼونکے:(که-مهٔ-ڼه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کمڼونکی- مؤنث کمڼونکې- وګورئ کمڼول-

کمڼونګ:(که-مهٔ-ڼه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کمڼول-

کمڼونه:(که-مهٔ-ڼه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کمڼول-

کمڼوهٔ:(که-مهٔ-ڼه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کمڼول-

کمڼېدل:(که-مهٔ-ڼې-دل)مصدر لازم- ملال کېدل- مړاوے کېدل- نولېدل- غمېدل- وچېدل- کړېدل- زمیرېدل- مړغچن کېدل- پېږے کېدل-

کمڼېدلے:(که-مهٔ-ڼې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کمڼېدلی- مؤنث کمڼېدلې- وګورئ کمڼېدل-

کمڼېدن:(که-مهٔ-ڼې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کمڼېدل-

کمڼېدنګ:(که-مهٔ-ڼې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کمڼېدل-

کمڼېدنه:(که-مهٔ-ڼې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کمڼېدل-

کمڼېدونکے:(که-مهٔ-ڼې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کمڼېدونکی- مؤنث کمڼېدونکې- وګورئ کمڼېدل-

کمڼېدهٔ:(که-مهٔ-ڼې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کمڼېدل-

کمواک:(کم-واک)اسم صفت- دَ لږ واک لرونکے- دَ معمولی اختیار مالک-

کمواکی:(کم-وا-کي)اسم- بې اختیاری- لږ اختیار لرنه-

کموالے:(کم-وا-لے)اسم- لږوالے- کمی-

کموده:(که-مو-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ اعلٰی قسم نری وریژه- جمع کمودې-

کم وکاست:(کم-و-کاست)اسم- لږوالے- کاست هم دَ کم پهٔ معنو کښې استعمالیږی- (م- فارسی)-

کمول:(کُ-مول)اسم- واحد- مذکر- کمون- لګ لګ- لق لق- ډینګ- یو قسم مارغهٔ-

کمول:(که-مه-ول)مصدر- لږ څهٔ څېزه څهٔ لرې کول- لږول-

کمون:(که-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کمول-

کمون:(که-مون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کمول-

کمونکے:(که-مه-وون-کے)اسم فاعل- جمع کمونکی- مؤنث کمونکې- وګورئ کمول-

کمونګ:(که-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کمول-

کمونه:(که-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کمول-

کموهٔ:(که-مه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کمول-

کمویه:(که-مو-یه)اسم صفت- کمینه- دَ کمې درجې-

کمیاب:(کَم-یاب)اسم- کم موندوکے- ناویات-

کمیز:(که-میز)اسم- واحد- مذکر- سراب- پیریان اُبهٔ-

کمین:(که-مین)اسمِ صفت- دَ کمې درجې لرونکے- کمینه- نیچ- پاسو- ناکجات- (۲)دَ ښکار کولو دَ پاره پټ کښېناستنه- څو- پټونے- تابو- (اسم)- (م- عربی)-

کمینتوب:(که-می-نه-توب)اسم- (۱)کمینګي- دَ کمینه جوړېدو حالت-

کمین ګاه:(که-مین-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پټېدو ځایُ (م- عربی)-

کمینګي:(که-می-نه-ګي)اسم- وګورئ کمینتوب-

کمینه:(که-می-نه)اسم صفت- کمویه- دَ کمې درجې- کمین-

کمیني:(که-می-نی)اسم- عاجزی- فقیری- غریبي- خاکساری-

کمېدل:(که-مې-دل)مصدر لازم- لږېدل- مختصر کېدل- ختمېدو ته نژدې کېدل-

کمېدن:(که-مې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کمېدل-

کمېدنګ:(که-مې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کمېدل-

کمېدنه:(که-مې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کمېدل-

کمېدونکے:(که-مې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع کمېدونکي- مؤنث کمېدونکې- وګورئ کمېدل-

کمېدهٔ:(که-مې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ کمېدل-

کمے:(که-مے)اسم صفت- دَ زیاتی ضد- لږوالے- کموخت- نیمګرتیا- حاجت- ضرورت-

کن:(کَن)لاحقه- یوه لاحقه چې لهٔ توری وروستو راځی لکه فېصله کَن- فېصله کونکے-

کن:(کَن)لاحقه- چې دَ کنستو پهٔ معنٰی راځی- لکه ګورکن-

کناټور:(کَ-نا-ټه-وَر)اسم صفت- (۱)کَناټې لرونکے- (۲)سست- کاهل- بې کاره- مؤنث کَناټوره-

کناټے:(کَ-نا-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ وجود یو اندام- دَ پټون آخری حصه- جمع کناټي-

کنار:(کَ-نار)اسم- کناره- ژی- څنډه- طرف- غاړه- تخرګ- غېږه- (م- فارسی)-

کناره:(کَ-نا-ره)اسم- وګورئ کنار-

کناری:(کَ-نا-ری)اسم- وندېڅے- قصاب- (افغانستان)-

کناری:(کَ-نا-ری)اسم- دَ لوپټو پهٔ کنارو تیله یا سلمه ستارې-

کناس:(کَ-ناس)اسم- واحد- مذکر- چوړے- چواړے- خاکروب- جاروکش- مسلی- (م- عربی)-

کناسکے:(کَ-ناس-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ مارغانو دَ نیولو دام- جمع کناسکي-

کنال:(کَ-نال)اسم- سرهٔ زر- (افغانستان)-

کنال:(کَ-نال)اسم- واحد- مذکر- دَ خاورې لوښے ښانک- کونال- جمع کونالونه-

کنال:(کَ-نال)اسم- واحد- مذکر- دَ زمکې دَ مېچ یوه خاصه اندازه چې دَ شلو مرلو برابر وی- دَ جریب څلورمه حصه- جمع کنالونه-

کناویز:(کَ-نا-ویز)اسم- واحد- مذکر- یو قسم وربښمینه کپړه- جمع کناویزونه-

کنایت:(کَ-نا-یت)اسم- اشاره- اشارت- (م- عربی)-

کنایه:(کَ-نا-یه)اسم- واحد- مؤنث- دَ فقې مشهور کتاب- (۲)اشاره- سراغ- علامه- کرښه- نښه- پېلامه- رموز-

کنبه:(کَم-به)اسم- واحد- مؤنث- پیاړمه- لنګه- کشه- (افغانستان)-

کن پړه:(کَن-پَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وروستو- شا ته- (افغانستان)-

کنپل:(کَن-پل)اسم- واحد- مذکر- دَ وړومبی قدم نښه- جمع کنپلونه-

کنتون:(کُن-تُون)اسم- واحد- مذکر- کُنډتون- دَ ښځې دَ خاوند لهٔ مرګه خاوند نهٔ کونه-

کنتی:(کَن-تی)اسم- کروتوب- موزیتوب- (افغانستان)-

کنټکین:(کَنټ-کین)اسم- لهٔ تار بوڼلے شوے- لهٔ تار جوړ شوے- سپښسو نه جوړ شوے-

کنج:(کَنج)اسم صفت- لافزن- لاپو- پوزمار-

کنج:(کُنج)اسم- واحد- مذکر- کُټ- خلوت خانه- جمع کنجونه-

کنج:(کُنج)اسم صفت- کُبن- کُبړ- (۲)دَ ونو جنګی- (اسم)-

کنجاره:(کَن-جا-ره)اسم- واحد- مؤنث- پوګ- فضله- بوس- بیټه- مغه تخم چې تېل ترې ایستلے شوی وی-

کنجپوړ:(کَنج-پوړ)اسم- واحد- مذکر- کُنی کبر- سرطان- جمع کنجپوړان-

کنجد:(کَن-جد)اسم- غټ او مضبوط ماتی-

کنجر:(کَن-جَر)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)م- (۲)بې شرم- بې حیا- (۳)کمینه- مؤنث کنجرې کنجره- جمع مؤنث کنجرې-

کنجری:(کَنج-ری)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)مه- ګډېدونکې- کنجره- (۲)ناکاره ښځه- بې شرمه- بې حیا-

کنجړ:(کَن-جړ)اسم- واحد- مذکر- کنجڼ- کنځړ- برستن- نالی- نیالی- شیرک- جمع کنجړان-

کنجړان:(کَن-جهٔ-ړان)اسم- بغوټې- اړی-

کنجغوټ:(کَنج-غوټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)تیارهٔ لرونکے تنګ ځایُ- (۲)مغه ځایُ چې پهٔ فصل کښې نیولی څاروی پکښې ساتلے شی-

کنجک:(کُن-جک)اسم صفت- تاژراتاژ وبښتهٔ- ګالګوتی وبښتهٔ- بندوکے-

کنجکدار:(کُن-جک-دار)اسم- واحد- مذکر- پهٔ بدن خالونه لرونکے مار-

کنجک دارمار:(کُن-جک-دار-مار)اسم- واحد- مذکر- څمڅه منګور- خالونه لرونکے مار- (افغانستان)-

کنجکه:(کَن-جهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خرموره- خرمهره- ګوجے-

سمندرځک- (۲)کاسیره- بې قیمته پېسه- جمع کنجکې-

کنجلک:(کُنج-لَک)اسمِ صفت- کنجلکه- تاژ شوے- مړواے شوے-

کنجن:(کَن-جَن)اسمِ صفت- ناز و ادا کونکے- مؤنث کنجنه- جمع مؤنث کنجنې-

کنجړ:(کَن-جَړ)اسم- واحد- مذکر- وګوری کنجړ-

کنجوړه:(کَن-جو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ شړشمو دَ تُخم بُوس- کنجاړه- جمع کنجوړې-

کنجوس:(کَن-جُوس)اسمِ صفت- شوم- بخیل- ترینګلے- جمع کنجوسان-

کنجوسي:(کَن-جُو-سي)اسم- واحد- مؤنث- شومتیا- بخیلي-

کنجوغه:(کَن-جو-غه)اسم- واحد- مؤنث- هغه کڅوړه چې ښکاری پکښې دَ ښکار سامان یا ښکار دَ آس زین پورې تړلے وی- اس پنډوکے- جمع کنجوغې-

کنجه غرے:(کَن-جه-غَۀ-رے)اسمِ صفت- یو قسم ګنډ چې دَ کپړې خونډے درې ګـټه پربکوی او لکه دَ پرې دارو توبرو یُ ګنډی دَ لرې نه کړه وړه نیته ټکوهلې ښکاری- اوګی- جمع کنجه غری-

کنجول:(کَن-جه-وَل)مصدر- قیمتی کول- قدر پیدا کول- پۀ قدر کول- کنجیل-

کنجولے:(کَن-جه-وۀ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع کنجولي- مؤنث کنجولې- وګوری کنجول-

کنجون:(کَن-جه-وَن)حاصلِ مصدر- وګوری کنجول-

کنجونکے:(کَن-جه-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع کنجونکي- مؤنث کنجونکې- وګوری کنجول-

کنجونګ:(کَن-جه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګوری کنجول-

کنجونه:(کَن-جه-وۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګوری کنجول-

کنجوۀ:(کَن-جه-وۀ)حاصلِ مصدر- وګوری کنجول-

کنجی:(کَن-جی)اسم- واحد- مؤنث- جندره- پلی- کیلی- دَ جرندی برخېړه کولو آله- پیچ- چابی- تاله- جمع کنجیانې-

کنجیل:(کَن-جي-یل)مصدر- وګوری کنجول-

کنجی:(کَن-جی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوزه- کوزړی- کوزېی- خمری- کنجے- (۲)سړوبې-

کنجے:(کَن-جے)اسم- واحد- مذکر- وګوری کنجی-

کنخا:(کَن-خا)اسم- ښکنخا- کنځل- بدَرد- سپک- زیړې- بدې ردې-

کنخاله:(کَن-خا-له)اسم- جاله- پۀ سیند کښې دَ لرګو اوړلو دَ پاره پکارونکې جاله- جمع کنخالې-

کنخپول:(کَنخ- پول)اسم- واحد- مذکر- چنګاش- کونی کبر- (افغانستان)-

کنخړ:(کَن-خَړ)اسم- واحد- مذکر- بړستن- کنجړ- کنجڼ- نیالی- نالی-

کنځل:(کَن-ځَل)اسم- واحد- مذکر- بدَرد ونیل- کنخاکول- سپک ونیل- زیړې کول-

کنځل مار:(کَن-ځَل-مار)اسمِ صفت- بد ځلے- بد خویه- پوچ ځلے- سپورځلے- تریخ- هغه څوک چې هر وخت یُ پۀ ځلۀ کښې کنځل نښتی وی کنځل مارے- جمع کنځل ماران-

کنځل مارے:(کَن-ځَل-ما-رے)اسم صفت- وګوری کنځل مار-

کنځله:(کَن-ځۀ-له)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم تور او سپین رنګ لرونکے تخم چې تېل ترې اېستلے شی- دَ خوراک دَ پاره هُم دغه تخم استعمالیږی- (۲)دَ موتیازو دَ بې قاعدګی ختمولو دَ پاره مریض ته ورکولے شی- (۳)دَ ما میاشت چې جنوری فروری کښې وی- نباتاتی نوم سي سي مم انډیکم (SESAMUM INDICUM)- جمع کنځلې-

کنځلې:(کَن-ځۀ-لې)اسم- دَ غنمو او اُربشو پۀ فصلونو کښې هغه زیړ زیړ ګلونه لرونکے بوټے چې دانې یُ دَ غنمو سره ورتولے شی-

کنځلے:(کَن-ځۀ-لے)اسمِ مفعول- جمع کنځلی- مؤنث کنځلې- وګوری کنځل-

کنځنه:(کَن-ځۀ-نه)حاصلِ مصدر- وګوری کنځل-

کنخڼ:(کَن-خَڼ)اسم- واحد- مذکر- بستر- (افغانستان)-

کنخه:(کَن-خه)اسم- واحد- مؤنث- مینځنی ګـته- جمع کنخې-

کنډڅ:(کَن-ډَڅ)اسم- واحد- مذکر- بنسټ- مونډ- مونډ کُنډ- زېله- بنیاد- جړړه-

کنځړ:(کَن-ځَړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه دارو چې دَ کُشتې جوړولو پۀ غرض دَ ځۀ ځیز لاندې باندې لګولے شی- (۲)وګوری کنجړ- (افغانستان)-

کنخړ:(کَن-خَړ)اسم- واحد- مذکر- کنګه خړ- ګنده خر- نیزه وړے-

کند:(کَند)اسم- واحد- مذکر- (۱)کنده پوغله- خندق- (۲)درز- پۀ دېوال سره یا فرش کښې دَ غلې یا نورو ځیزونو دَ ایښلو جوړ کړے شوے ځایُ- تړونی- خرقه- دَ ملګانو فقیرانو قمیص پوله پوشاک- ګدړی- بهوړی- دَ منګانو شړی- جمع کندونه-

کند:(کُند)اسمِ صفت- دَ تېز ضد- پس- (م- فارسی)-

کنداره:(کَن-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- پیاله- دوله- جام- کنداژه- (افغانستان)-

کنداژه:(کَن-دا-ژه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری کنداره-

کنداغ:(کَن-داغ)اسم- واحد- مذکر- دَ ټوپک دسته- دَ ټوپک هغه لاستے چې پۀ لرګی جوړ وی- جمع کنداغونه-

کندپوش:(کَند-پوش)اسم- واحد- مذکر- کند اغستونکے- فقیر- (م- فارسی)-

کندخه:(کَن-دۀ-خه)اسم- واحد- مؤنث- جونګنه- جونګړه- هغه ځایُ چې دَ لختو جوړوی- (افغانستان)-

کندرخے:(کَن-در-خے)اسم- دَ چرمښکی یو قسم- (افغانستان)-

کندره:(کَن-دۀ-ره)اسم- واحد- مؤنث- ژوره کنده- زیات ژوروالے او کم پلنوالے لرونکې کنده-

کندرے:(کَن-دَ-رے)اسم- واحد- مذکر- کندیړے- تیګړے- دسترخوان- څمړ-

کندرې کوندرې:(کَند-رې-کوند-رې)اسمِ صفت- کندې کوندې- کندې کپړې- کندې او خارخوړی-

زبر (خ-بۀ-ره)، زورکے (شل)، پېش (نو-کا-ره)، زېر (ک-تاب)، جزم (شکون)، ۀ (ژ-ړه)، ۀ (ړو-بې-دۀ)

کندغالے:(کَند-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- کنده- ړوغل- جمع کندغالی-

کندغولي:(کَند-غو-لي)اسم- ړوغل- ړوغلکے- پهٔ زمکه کښې کنستے شوے ړوغل-

کندل:(کَن-دَل)مصدر- کنودل- کنل- مښل- کنستل- (متروک)-

کندلے:(کَن-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کندلی- مؤنث کندلې- وګورئ کندل-

کندن:(کَن-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کندل-

کندنګ:(کَن-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کندل-

کندو:(کَن-دُو)اسم- واحد- مذکر- خمبه- دَ دانو سمبالولو کوټګۍ- جمع کندوان-

کندورے:(کَن-دوُ-رے)اسم- واحد- مذکر- خوانچه- مېزپوش- وړوکے دسترخوان- جمع کندوری-

کندړی:(کَن-دو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- وړه کنده- ژوره ، ناهمواره او وُړده ړوغله- ړوغل چې پلن والے ئې دَ خوړ پهٔ نسبت کم وی-

کندوړے:(کَن-دُو-ړے)اسم- واحد- مذکر- زړوکے کندو- جمع کندوړی-

کندوړے:(کَن-دو-ړے)اسم- دَ خاورین مات شوی لوښی ټوټه- کودے- کودرے-

کنده:(کَن-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ یوې هغه برخه چې سپار پکښې لګېدلے وی- کندهٔ- جمع کندې-

کنده:(کَن-ده)اسم- واحد- مؤنث- کندره- ړوغله- جمع کندې-

کندې کپرې:(کَن-دې-که-پِه-رې)اسم- وګورئ کندې کروندې-

کندې کروندې:(کَن-دې-کرون-دې)اسم- کندې کوندې- لوړې ژورې- کندې کپرې- نا اواره زمکه-

کندې کوندې:(کَن-دې-کون-دې)اسم- وګورئ کندې کروندې-

کندے:(کَن-دے)اسم- واحد- مذکر- دَ ډېرو کورونو محلت- جمع کندی-

کنډ:(کَنډ)اسم- واحد- مذکر- ارموسته- چیړ- ژاوله- کنډورے- سېله- چینی- دَ نښتر یا بلې غوړې شان ونې سېله- (۲)تومنه- دَ لنګې مېښې، غوا، چېلۍ وغېره دَ زړومبیو درې ورځو پئ-

کنډا:(کَن-ډا)اسم- دَ ماتو ښکرونو ځاروے- (۲)هغه سړے چې شونډې ئې شلېدلې وی- مؤنث کنډۍ-

کنډاتے:(کَن-ډا-تے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشوم دَ کېدو نه پس دَ دوه درې ورځو پئ- کنډ-

کنډازه:(کَن-ډا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پیاله- (۲)ټوټانګه- کونډۍ-

کنډاس:(کَن-ډاس)اسم صفت- بې غاښو- کړشپ-

کنډاستوب:(کَن-ډاس-توب)اسم- بې غاښو خُله- دَ غاښونو خالی پاتې کېدنه-

کنډال:(کَن-ډال)اسم صفت- (۱)تش- (۲)کنډول- کنډولے- (۳)دَ مات شوی منګی یا کټوی وغېره هغه برخه چې څهٔ څیز پکښې کېښودے کېږی-

کنډاؤ:(کَن-ډاؤ)اسم- واحد- مذکر- (۱)درز- نامکمل- نیمګړے- کنډوهٔ- دَ دوو غرونو مینځ کښې وران ویجاړ ځائې- (۲)دَ ماتو ښکرونو لرونکے غوایهٔ- جمع کنډاؤنه-

کنډپئ:(کَنډ-پئ)اسم- ارموسته- وګورئ کنډ-

کنډتون:(کَنډ-تُون)اسم- کونتون- چې خاوند ئې مړ وی- دَ ناوې هغه عمر چې دَ خاوند دَ مرګ نه پس ځان له بغېر دَ بل وادهٔ نه تېر کړی یا تیریږی-

کنډر:(کَن-ډر)اسم- واحد- مذکر- کنډغر- (۱)ورانه آبادی- (۲)دَ غلا دَ پاره شوے غار- (۳)مېنه- جمع کنډرونه- (م- هندی)-

کنډرے:(کَن-ډهٔ-رے)اسم- دَ کنډر سره متعلق- دَ بل مېنه کښې وُسېدونکے- فقیر- همسایه- جمع کنډریان-

کنډغر:(کنډ-غر)اسم صفت- کنډر- وران کور-

کنډک:(کَن-ډک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ګډو چېلو رمه- جمع کنډکونه-

کنډک:(کَن-ډک)اسم- واحد- مذکر- (۱)کټوه- (۲)کټو- (۳)دَ ړوړی ټوک- سوکړک- جواری- جمع کنډکونه-

کنډ کپر:(کَنډ-که-پَر)اسم صفت- کندې کوندې- لوړه ژوره- وران ویجاړ-

کنډک مشر:(کَن-ډک-مهٔ-شر)اسم- واحد- مذکر- دَ دېرشو کسانو مشر- (افغانستان)-

کنډ کنډ:(کَنډ-کَنډ)اسم صفت- (۱)کوکله- موره- منجمد- غُټې غُټې- (۲)غټې غټې اوښکې-

کنډکی:(کَنډ-کی)اسم- واحد- مؤنث- دَ روټۍ څلورمه برخه-

کنډو:(کَن-ډُو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کنډاؤ-

کنډوالے:(کَنډ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- کنډوالے- کنډؤ شوی- زاړهٔ- نړیدلی- چې پوره او روغ نهٔ وی-

کنډواله:(کَنډ-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ زړې زمانې نښانې- دَ پخوانی زمانې زاړهٔ دېوالونه او زاړهٔ څیزونه-

کنډوکپر:(کَن-ډو-کَ-پَر)اسم صفت- غار- ړوغله- ړوغلی ځائې- ځائې پهٔ ځائې مات ګډ- لوړ ژور-

کنډوکے:(کَن-ډُو-کے)اسم- واحد- مذکر- غُنډارے- غنډورے- غُنډ-

کنډول:(کَن-ډه-وَل)مصدر- دَ ښځې خاوند قتلول-

کنډول:(کَن-ډول)اسم- واحد- مذکر- (۱)جام- دَ اُبو څښلو خاورین لوښے- (۲- صفت)کړشپ- کنډاس- (۳)دَ اوړو اخښلو ښانک- جمع کنډولونه-

کنډول:(کَن-ډول)اسم- واحد- مذکر- اتش خانه- (افغانستان)-

کنډولوټے:(کَن-ډو-لو-ټے)اسم تصغیر- کنډول ګوټے- وړوکے کنډول- کنډولکے- وړوکے کنډولے-

کنډوله:(کَن-ډو-له)اسم- واحد- مؤنث- یوه غرنیزه سبزی چې دَ پخلی دَ پاره پکارولے شی- جمع کنډولې-

کنډولې:(کَن-ډو-لې)اسم- واحد- مؤنث- دَ یو بوټی نامه چې ګلونه او پاڼې ئې خوشبو کوی-

کنډولے:(کَن-ډو-لے)اسم- دَ کنډول نه اسم تصغیر- (۱)پیالی- دَ خاورو نه جوړه شوې پیالۍ- وړوکے کنډول- کنډولکے- (۲)بې لستوڼو قمیص چې

زنانه ئ اغندی- کنړولے- کندے- (۲)یو غرنے بوټے چې بېخ ئ خوږ وی- او خوړلے کیږی-

کنړو نیول:(کن-ړو-نی-ول)مصدر- لارې کودرې نیول- ناکه بندی کول- گیر چاپېره کنډۀنه او لارې نیول-

کنړووالے:(کن-ړو-وا-لے)اسم- (۱)کمے- نقصان- (۲)خنړوالے- کموالے-

کنړوول:(کن-ړو-ول)مصدر- کمے راوستل- نیمگړتیا پېدا کول- ناقصه کول- کاروبار خنړول-

کنړوون:(کن-ړو-ون)حاصل مصدر- وگورئ کنړوول-

کنړوونکے:(کن-ړو-وون-کے)اسم فاعل- جمع کنړوونکی- مؤنث کنړوونکې- وگورئ کنړوول-

کنړوونګ:(کن-ړو-ونګ)حاصل مصدر- وگورئ کنړوول-

کنړوونه:(کن-ړو-وۀ-نه)حاصل مصدر- وگورئ کنړوول-

کنړوېدل:(کنړ-وې-دل)مصدر- تاوانی کېدل- کمے پېدا کېدل- نیمگړتیا پېدا کېدل- لرې کېدل- لۀ منځه تلل-

کنړوېدن:(کنړ-وې-دن)حاصل مصدر- وگورئ کنړوېدل-

کنړوېدنګ:(کنړ-وې-دنګ)حاصل مصدر- وگورئ کنړوېدل-

کنړوېدنه:(کنړ-وې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وگورئ کنړوېدل-

کنړوېدونکے:(کنړ-وې-دون-کے)اسم فاعل- جمع کنړوېدونکی- مؤنث کنړوېدونکې- وگورئ کنړوېدل-

کنړوېدۀ:(کنړ-وې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وگورئ کنړوېدل-

کنړه:(کن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کټ- د کانی لویه تخته- جمع کنړې-

کنړه:(کن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تله- د زرگرانو د نازک تول تله- دړه- (۲)ژبی-

کنړه:(کن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- سرچینه هغه ځائ چې دریاب ترې وځی- جمع کنړې-

کنړه:(کن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې خاوند ئ مړ وی- مېروشه- جمع کنړې-

کنړه:(کن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د اسپنې حلقه چې زنځیر پکښې اچولے شی- د کبانو د نیولو آله-

کنړیاله:(کنړ-یا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وران ویجاړ ځائ- کنړواله- کنړ- (۲)د ځاروو د دمه کولو ځائ- شپول- جمع کنړیالې-

کنړیالی:(کنړ-یا-لي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هندوانه- (۲)خټکے-

کنړی زن:(کن-ړی-زن)اسم- واحد- مذکر- کنتون- کنړتون- (افغانستان)-

کنړی:(کن-ړی)اسم- واحد- مؤنث- د وښو ځپرگے- د وښو هغه عارضی ځپرگے چې ښکاریان پکښې د ښکار کولو انتظار کوی-

کنړی:(کن-ړی)اسم- واحد- مؤنث- مات ښکرونه لرونکې غوا یا مېښه- مذکر کنړ/کنړے-

کنړی:(کن-ړی)اسم- واحد- مؤنث- د لرگی نه جوړه شوې پیالی-

کنړے:(کن-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)مات ښکرے- (۲)بې غاښونو- جمع کنړی-

کنړدار:(کن-ړې-دار)اسم صفت- کنړه لرونکے-

کنست:(که-نست)اسم- د کنستل نه اسم- وگورئ کنستل-

کنستر:(ک-نس-تر)اسم- (۱)د دېگ خیرے- د دېگ وېخ- (۲)د غرۀ لمنه- د غرۀ اړخ-

کنستل:(ک-نس-تل)مصدر- کنده کول- کیندل- ژورول-

کنستلے:(ک-نس-تۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کنستلی- مؤنث کنستلې- وگورئ کنستل-

کنستن:(ک-نس-تن)حاصل مصدر- وگورئ کنستل-

کنستنه:(ک-نس-تۀ-نه)حاصل مصدر- وگورئ کنستل-

کنستونکے:(ک-نس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کنستونکی- مؤنث کنستونکې- وگورئ کنستل-

کنستۀ:(ک-نس-تۀ)حاصل مصدر- وگورئ کنستل-

کنسټ:(کن-سټ)اسم- واحد- مذکر- بېخ- وېخ- بنیاد-

کنسک:(کن-سک)اسم صفت- کروټے- شوم- بخیل- کنجوس- پاسو-

کنسکتوب:(کن-سک-توب)اسم- تاوان- زیان- کنسکی- بخیلی- شومتیا- کنجوسی- پاستوب-

کنسکی:(که-نس-کي)اسم- شومتیا- تنگ نظری- تاوان- زیان- کروټی- کنستی-

کنسکے:(ک-نس-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- بخیل- شوم- کنجوس-

کنسوے:(کن-سۀ-وے)اسم- بې زینه په اس سورېدنه- کونسوے-

کنغاره:(کن-غا-ره)اسم- واحد- مؤنث- د کناټی مړوکے- جمع کنغارې-

کنغاله:(کن-غا-له)اسم- واحد- مؤنث- کوژدن- نیوکه- جمع کنغالې-

کنفرانس:(کن-فرانس)اسم- واحد- مذکر- کانفرنس- غونډه- جرگه- د خطاب کولو ځائ او جرگه- (افغانستان)- (م- انگریزی)-

کن فکان:(کن-ف-کان)اسم- عالم موجودات- کائنات- (م- عربی)-

کنک:(کنک)اسم صفت- تنگ نظرے- (افغانستان)-

کنکاوړ:(کن-کا-وړ)اسم- واحد- مذکر- کوړی- باړیوه- بادیوه- بېداوه- کنکوړ- کنکوا- بړمبکے- کنکوړ- پتنگ-

کنکر:(کن-کر)اسم- واحد جمع- مذکر- وړوکے کاڼے- د کاڼی ټوکړې- کنکرړ- کانکر-

کنکرړ:(کن-ک-رړ)اسم- (۱)یخ بسته- مړاوے کېدنه- یخېدنه- کوکله کېدنه- (۲- صفت)کنگل- یخ شوے- (۲)کوکله- کنگوړ-

کنکرړ:(کن-که-رړ)اسم- واحد- مذکر- وگورئ کانکوړ-

کنکرے:(کنک-کۀ-رے)اسم- په تنور کښې بهېدلې وچه کسکره روټی-

کنکړ:(کن-کړ)اسم صفت- واحد- مذکر- کانکړ- مړاوے شوے- پژمرده-

کنکوا:(کنګ-که-وا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کنکاوک-

کنکوک:(کنګ-که-وک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کانکوک-

کنګ:(کنګ)اسم- د غټې څربې پېغلې په صفت- باج وخروج- سباد- (افغانستان)-

کنکاش:(کنګ-کاش)اسم- کنکاچ- صلاح مشوره- مصلحت-

کنګال:(کنګ-ګال)اسم صفت- (۱)وینځلے شوے- صفا شوے- (۲)خالي- تش- مفلس- غریب-

کنګالول:(کنګ-ګا-له-ول)مصدر- (۱)د ابو سره لوښے وینځل- (۲)د چا نه هر څۀ اخستل او تش لاس پرېښول-

کنګالون:(کنګ-ګا-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ کنګالول-

کنګالونکے:(کنګ-ګا-له-وون-کے)اسم فاعل- جمع کنګالونکي- مؤنث کنګالونکې- وګورئ کنګالول-

کنګالونګ:(کنګ-ګا-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کنګالول-

کنګالونه:(کنګ-ګا-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کنګالول-

کنګالوۀ:(کنګ-ګا-له-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ کنګالول-

کنګالے:(کنګ-ګا-لے)اسم- هغه ابۀ چې په مغې لوښی کنګال شوی وی-

کنګالېدل:(کنګ-ګا-لې-دل)مصدر- (۱)د ابو سره لوښي وینځل- (۲)مفلس کېدل- بې کاره کېدل-

کنګالېدن:(کنګ-ګا-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کنګالېدل-

کنګالېدنګ:(کنګ-ګا-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کنګالېدل-

کنګالېدنه:(کنګ-ګا-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کنګالېدل-

کنګالېدونکے:(کنګ-ګا-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کنګالېدونکي- مؤنث کنګالېدونکې- وګورئ کنګالېدل-

کنګالېدۀ:(کنګ-ګا-لې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ کنګالېدل-

کنګخړے:(کنګ-که-خۀ-ړے)اسم- د سېلاب راوړلې شوې خاوره- بې کاره او بې فائدې څیزونه-

کنګر:(کنګ-ګر)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم پسول- (۲)سنګپائ- سوکلونے- تیره- (۳)کنګل- یخ- ابۀ چې لۀ هېري یخنی لۀ کبله کلکې شي-

کنګرخل:(کنګ-ګر-خل)اسم- بېکاره واښۀ- خرابه شوې ګیاه- کنګرخلے-

کنګرخلے:(کنګ-کر-خۀ-لے)اسم- وګورئ کنګرخل-

کنګره:(کنګ-ره)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)د خټې مخروطی منهۍ چې د کوټې یا برج د پاسه جوړ وی- بام- د مناري غاړه- د ښار د حفاظت مناره- برج- مناره- (۲)کوکره- (۳)کنګل- (۴)ماہی-

کنګرے:(کنګ-رے)اسم- واحد- مذکر- کوترے- کرکاںے- کاکړووب- ککرے- کوترکے- کوکرے- د سپی وړوکے بچے-

کنګړ:(کنګ-ګړ)اسم- سوری سوری کاڼیزه سخته ماده چې د پښو خیرے پرې کرولے شي-

کنګړے:(کنګ-ګړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)کړه- هغه بنګړے چې سرونه يې د مړوند نه د تاوولو نه پس جدا پاتې شي- وښے- د زنانوؤ د لاس کالے- کنګړ- ګاوړ- (۲)کنګل- یخ- موره-

کنګړه:(کنګ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د خټې مخروطی منهۍ چې د کوټې یا برج د پاسه جوړولے شي- د حفاظت دېوال- غاړه- د دېوال یا غاړې اوچته حصه-

کنګړی:(کنګ-ړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- په دېوال کښې واړۀ واړۀ تاخونه-

کنګړے:(کنګ-ړے)اسم- واحد- مذکر- کوترے- د سپی وړوکے بچے- جمع کنګری-

کنګس:(کنګ-ګس)اسم صفت- (۱)بدری- (۲)چکر- (۳)لاره پرېښودنه-

کنګس:(کنګ-ګس)اسم- د نرګس بوټے او ګل- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ نرګس- (افغانستان)-

کنګس:(کنګ-ګس)اسم صفت- خفه- پرېشان- اوتر بوتر- نشې نیولے- کنکس-

کنګل:(کنګ-ګل)اسم- واحد- مذکر- کنګړ- موره- یخ- د ابو د سر د پاسه د هېرې یخنی لۀ کبله جوړ شوے پترے- جمع کنګلونه-

کنګلول:(کنګ-که-له-ول)مصدر- موره کول- واوره کول- کنګړ جوړول- انتهائی یخېدل-

کنګلون:(کنګ-که-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ کنګلول-

کنګلونکے:(کنګ-که-له-وون-کے)اسم فاعل- جمع کنګلونکي- مؤنث کنګلونکې- وګورئ کنګلول-

کنګلونګ:(کنګ-که-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کنګلول-

کنګلونه:(کنګ-که-له-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کنګلول-

کنګلوۀ:(کنګ-که-له-وۀ)حاصل مصدر- وګورئ کنګلول-

کنګلېدل:(کنګ-که-لې-دل)مصدر- یخېدل- واوره کېدل- موره کېدل-

کنګلېدن:(کنګ-که-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کنګلېدل-

کنګلېدنګ:(کنګ-که-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کنګلېدل-

کنګلېدنه:(کنګ-که-لې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کنګلېدل-

کنګلېدونکے:(کنګ-که-لې-دون-کے)اسم فاعل- جمع کنګلېدونکي- مؤنث کنګلېدونکې- وګورئ کنګلېدل-

کنګلېدۀ:(کنګ-که-لې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ کنګلېدل-

کنګو:(کنګ-ګو)اسم- واحد- مذکر- (۱)زعفران- (۲)انجماد- منجمد کېدنه-

کنګوره:(کنګ-ګو-ره)اسم- (۱)څوکه- سر- څوکښی- (۲)مردرو- سنګر- باره- پناه-

کنګوک:(کنګ-که-وک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کانکوک-

کنګه:(کنګ-که)اسم- واحد- مؤنث- کینګه- لوړه دنګه پېغله-

کنګی:(کنګ-ګی)اسم- کنګی- کندکی- غل- د انسان بولې- (افغانستان)-

ی (څی-رل)، ې (مې-ره-ول)، ۍ (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کنل:(که-نل)مصدر - کنستل- کنودل- کنده کول-

کنوبے:(کَ-نو-بے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ربشتلے- رېشتل- هغه مواد چې د لوښی پهٔ وېخ کښې آخر ته پاتې شی- (۲)زینخاوے- زیم- لړې اُبهٔ- معمولی اُبهٔ- هغه لړې اُبهٔ چې پهٔ لښتی کښې د بند اُچولو نه پس د بند نه څاڅکے څاڅکے رابهیږی-

کنوچه:(کَ-نو-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرد- (۲)خردگ- یو قسم دارو-

کنود:(کَ-نود)اسم صفت- ناشکره-

کنودل:(کَ-نو-دَل)مصدر- کینډل- کنستل- کندل- کنل- توږل- مښل- سرسر اخستل-

کنودن:(کَ-نو-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کنودل-

کنودنګ:(کَ-نو-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کنودل-

کنودنه:(کَ-نو-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کنودل-

کنودونکے:(کَ-نو-دون-کے)اسمِ فاعل- جمع کنودونکی- مؤنث کنودونکې- وګورئ کنودل-

کنودهٔ:(کَ-نو-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ کنودل-

کنوښے:(کَ-نو-ښے)اسم- واحد- مذکر- د اُس زین- جمع کنوښی-

کنول:(که-نه-ول)مصدر- وګورئ کنودل-

کنه:(کَ-نه)دا لفظ ماقبل جملې د تصدیق او تاکید پهٔ غرض وئیلے شی- خان له څهٔ معنٰی نهٔ لری- لکه وې کوره کنه-

کُنه:(کُ-نه)اسم- واحد- مؤنث- کُنې- زېخ- ببېخ- جږ- د انسان او حیوان د لوئی بولو خائې- جمع کُنې-

کنه:(کهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- ریچه- سپینه شان وړوکې سپېږه چې د سر پهٔ وېښتو کښې کیږی- جمع کنې-

کُنه سوے:(کُ-نه-سهٔ-زے)اسمِ صفت- لهٔ لاندې معمولی سوزېدلے-

کُنه واز:(کُ-نه-واز)اسمِ صفت- خان ښیونکے- کم ظرفه- کبرژن-

کُنه وازی:(کُ-نه-وا-زی)اسم- واحد- مؤنث- مشروتېی- کبر کونه- غرور کونه- ځان ښیئنه- کم ظرفی- لوئې کونه-

کنی:(کَ-نی)اسمِ صفت- کُنه ورکونکے- بې غېرته- جمع کُنیان-

کَنی:(کهٔ-نی)حرف- کهٔ نهٔ وی- کَنی- کَندې- کنی-

کنی کبر:(کَ-نی-که-بر)اسم- واحد- مذکر- سرطان- تیرماه- یو آبی حشره-

کنیت:(کُ-نی-یت)اسم- هغه نوم چې د خوئ یا لور پهٔ نسبت پلار ته وئیلے شی- لکه ابوالحسن- (م- عربی)-

کنیز:(کَ-نیز)اسم- واحد- مؤنث- وینځه- (م- عربی)-

کنیزک:(کَ-نی-زک)اسمِ تصغیر- د کنیز اسمِ تصغیر- د وینځې خوئ- مؤنث کنیزکه-

کنین:(کُ-نین)اسم- یو قسم دوائی-

کِنی:(کَ-نې)حرف- (۱)وګورئ کنی- (۲- اسم)د کبانو نیولو لوئې جال-

کنے:(کُ-نے)اسم- واحد- مذکر- کنے- کُنی- د کډو برو یا مال څاروو یو وړوکے شان چینجے چې پهٔ څاروو پورې انښتے وی او وینه ترې څښی- کونے- جمع کنی-

کنے:(کَ-نے)اسمِ صفت- هر هغه څیز چې ورکوتے وی-

کڼ:(کڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کونی- کنه- ورخه- (۲)هغه خالصې بې اُبو شوملې چې کرت ترې جوړیږی- (۲)سیله- جوهر- تېینکې شان اُبهٔ چې تار کوی- چیږ- (افغانستان)-

کڼ:(کڼ)اسم- د پوزې بهېدونکې ګندګی- قڼ-

کڼاتو:(کَ-ڼا-تو)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې کڼ ئې بهیږی-

کڼاکه:(کَ-ڼا-که)اسم- واحد- مؤنث- د جوارو وریته دانه- نینه- جمع کڼاکې-

کڼاوه:(کَ-ڼا-وه)اسم- واحد- مؤنث- د لرګی پېزار- جمع کڼاوې-

کڼاوه ماتې:(کَ-ڼا-وه-ما-تې)اسم- واحد- مؤنث- د ماشومانو یو قسم لوبه-

کڼ بکڼ:(کڼ-به-کڼ)اسم- واحد- مذکر- پنډبکر- بکری-

کڼزکه:(کڼ-زر-که)اسم- واحد- مؤنث- یو ازغی لرونکے بوټے- ژرګه- جمع کڼزکې-

کڼسکے:(کَ-ڼس-کے)اسمِ صفت- بخیل- شوم- کنجوس- جمع کڼسکی-

کڼوڅکے:(کَ-ڼوڅ-کے)اسمِ صفت- تېز اورېدونکے- کڼ موڅ- جمع کڼوڅکی-

کڼوراغه:(کَ-ڼو-را-غه)اسم- واحد- مذکر- کارغهٔ- جمع کڼوراغې-

کڼول:(کَ-ڼه-ول)مصدر- د چا غوږونه د خبرو اورېدو نه وېستل- کوڼول-

کڼولے:(کَ-ڼه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع کڼولی- مؤنث کڼولې- وګورئ کڼول-

کڼونکے:(کَ-ڼه-ون-کے)اسمِ فاعل- جمع کڼونکی- مؤنث کڼونکې- وګورئ کڼول-

کڼونه:(کَ-ڼه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کڼول-

کڼوهٔ:(کَ-ڼه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ کڼول-

کڼه:(کَ-ڼه)اسمِ صفت- د کوڼ مؤنث- هغه ښځه چې څهٔ نهٔ اوری- جمع کڼې-

کڼه:(کهٔ-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- کنه- یو وړوکې سپېږه- (۲)یو قسم مارغهٔ- جمع کڼې-

کڼ موڅ:(کڼ-موڅ)اسمِ صفت- وګورئ کڼوڅکے-

کڼی وال:(که-ڼی-وال)اسم- واحد- مذکر- جولا- کڼی وال- کڼے اچونکے- د تنستې اودونکے- جمع کڼی والان-

کڼیا:(کڼ-یا)اسمِ صفت- بې حده- بې اندازې- ډېر زیات-

کڼېدل:(که-ڼې-دل)مصدر- لهٔ اورېدو پاتې کېدل- د سماعت قوت ختمېدل-

کڼېدن:(که-ڼې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کڼېدل-

کڼېدنګ:(که-ڼې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کڼېدل-

کڼېدنه:(که-ڼې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کڼېدل-

کڼېدونکے:(که-ڼې-دون-کے)اسم فاعل- جمع کڼېدونکی- مؤنث کڼېدونکې- وګورئ کڼېدل-

کڼېدهٔ:(که-ڼې-دهٔ)حاصلِ مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ کڼېدل-

کنې:(که-نې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دشمني- عداوت- مخالفت- (۲)دَ لرګی پیاله-

کنې:(که-نې)اسم- واحد- مذکر- جولا- کډی وال- کنې وال-

کو:(کو)اسم- دَ اوښ دَ ملا راوتلې برخه- کومان- بوک- قُب- کُب-

کو:(کُو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم وُنه-

کو:(کُو)اسم صوت- فریاد- کوکه- چغه- ژړا-

کواټ:(کَ-واټ)اسم تصغیر- واحد- مذکر- چتر- دَ څلورو کالو اوښ- دَ اوښ بالغ بچے-

کواټکے:(کو-واټ-کے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- دَ دوو کالو اوښ-

کواټل:(کَوا-ټل)مصدر- وګورئ کوټل-

کواټه:(کَوا-ټه)اسم صفت- واحد- مذکر- خرابې خبرې کونکے- بکواسی- بدزبان- پوچ کو- کرتو- قرتن-

کواټې:(کَوا-ټې)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو یوه لوبه-

کوارچه:(که-وار-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ مېوو اوړونکې وړه بوره- وړه کجاوه- وړه کواره- جمع کوارچې-

کوارغندل:(کَوار-غَن-دَل)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بوټے چې پهٔ دارو کښې . پکارولے شي- کورغندل-

کواره:(کَ-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- کاره- کجاوه- خلته- سوره-دَ مېوو غټه بوره- جمع کوارې-

کواره:(کَ-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ لرګو چت-

کواړه:(کَوا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کهواړه- دَ پړی هغه کړی چې دَ ګل زیړی نه تاړ وی-

کواړی:(کَ-وا-ړی)اسم- واحد- مؤنث- کوړی- ترښخ- تخز-

کواړے:(کَ-وا-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ کارغهٔ دَ مښوکې پهٔ شان کولنګ (مېتے)- جمع کواړی-

کوازه:(کَ-وا-زه)اسم- دَ لرګو جوړه شوې اړانه چې ګلکار پرې ولاړ وی او دېوال جوړوی- خوازه- پاړ-

کواسه:(کَ-وا-سه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خوې یا لور نمسے- کواسے-

کواغی:(کَوا-غی)اسم- واحد- مؤنث- زاغچکه- زاغچه- کاغی-

کواکب:(کَ-وا-کب)اسم- دَ کوکب جمع- ستوری-

کوال:(کَ-وال)اسم- خیال ساتنه-

کواله:(کَ-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- فریاد- جمع کوالې-

کواندے:(کَ-وان-دے)اسم- واحد- مذکر- هغه ساز او مهار چې دَ ناوې اُوړونکې اُوښ دَ پاره خاص جوړ شوے وی-

کوانې:(کَوا-نې)اسم- واحد- مؤنث- دَ ماشومانو یوه لوبه- غانج-

کوائې:(کَوائې)اسم صوت- دَ ګیدړ آواز-

کوب:(کوب)اسم- واحد- مذکر- کُب- دَ اُوښ قت- بوک- بوکان- کو- جمع کوبونه-

کوبپیکے:(کوب-پی-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ نسوارو ډبے- جمع کوبپیکی- (افغانستان)-

کوبړ:(کُو-بړ)اسم صفت- (۱)مراوے- (۲)خزان- (اسم)-

کوبلکه:(کوب-له-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ خړېړی یو قسم- جمع کوبلکې-

کوبه رنده:(کو-به-رن-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ ترکانې اوزار چې دَ لرګی هوارے راولی-

کوبی:(کو-بی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بړبړقی- بُړبُړی- حباب- بړبوکی-

کوبې:(کو-بې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تابو- (۲)پوښکه- پوکڼې- پونکه- پوکانې-

کوبے:(کو-بے)صفت- (۱)قبے- (۲)دسترخوان- (اسم)-

کوپ:(کوپ)اسم- واحد- مذکر- (۱)غټه پیالی- (۲)ټوپ- ترپله- دانګه- دانګ- (۳)کومان- کو- کوپان- (۴)لهٔ جنجال، عذاب وغېره نه تېښته- (م- انګریزی کَپ)-

کوپ:(کوپ)اسم صفت- (۱)قبے- شاټیټے- (۲)چیت-

کوپا:(کو-پا)اسم- واحد- مذکر- هغه خر چې دَ یرغهٔ اُس په شان تلهٔ کوی-

کوپار:(کُو-پار)اسم- واحد/جمع- مذکر- دَ کفار مغفن- (عامیانه)-

کوپال:(کو-پال)اسم- واحد- مذکر- دَ لرګی دوکانچه- چوکې- څوکې-

کوپان:(کو-پان)اسم- واحد- مذکر- دَ اُوښ قب- کو- جمع کوپانونه-

کوپتیا:(کوپ-تیا)اسم صفت- (۱)ناوړه- (۲)پرېشان- ګډوډ-

کوپر:(کو-پر)اسم- واحد- مذکر- کپر- کپره- کوپری- ککری- ککره- کوپړی- دَ سر ولاړه لوېړنده-

کوپره:(کوپ-ره)اسم- واحد- مؤنث- ناریل- اناریل- کوپری- کوپړه- دَ ساحلی علاقو یوه وُنه او دَ هغې مېوه چې مېنځ کښې ئې رس یا غوړی وی- نباتاتی نوم لوډایشیا سېکیلرم (LODOICEA SECHELLARUM)-

کوپری:(کوپ-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کوپره-

کوپړه:(کوپ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یو قسم دوائی- (۲)کوپره-

کوپړی:(کوپ-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ککری- کپری-

کوپله:(کوپ-له)اسم- واحد- مؤنث- خراړه- یو خړرنګې مرغی- چنډور- سپېرکونډه- ټوپازن- جمع کوپلې-

کوپلې:(کوپ-لې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ زین پوش- دَ زین قاش- کوپی-

کوپنې:(کُو-پ-نې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مثانه- خوپنې دَ موتیازو خوپنې- پوکنې-

کوپول:(کُو-په-وَل)مصدر- کړپول- کړول- چیتول-

کوپون:(کُو-په-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کوپول-

کوپونکے:(کُو-په-وون-کے)اسمِ فاعل- جمع کوپونکی- مؤنث کوپونکې- وګورئ کوپول-

کوپونګ:(کُو-په-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کوپول-

کوپونه:(کُو-په-وَهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کوپول-

کوپه:(کُو-په)اسم- واحد- مؤنث- یخدان- (۱)څرمینه بکس- د څرمنې بکس- (۲)تاکۍ- کوپۍ- توکے- (۳)د نېلو لوښے- (۴)لافه- باټه- (۵)د ښځو یو پسول- (۶- صفت)چاغ- پړسېدلے- جمع کوپې-

کوپی:(کُو-پی)اسم- کوپېدنه-

کوپېدل:(کُو-پې-دَل)مصدر- کړپېدل- چپېدل- چیتېدل-

کوپېدن:(کُو-پې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ کوپېدل-

کوپېدنګ:(کُو-پې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کوپېدل-

کوپېدنه:(کو-پې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ کوپېدل-

کوپېدونکے:(کو-پې-دُون-کے)اسم فاعل- جمع کوپېدونکی- مؤنث کوپېدونکې- وګورئ کوپېدل-

کوپېده:(کو-پې-دَه)حاصل مصدر- وګورئ کوپېدل-

کوپی:(کُو-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)بوتل- (۲)کوپړی- بنیښه- خُمرۍ- (۳)کوپے- هغه تیمی لوښے چې پکښې حاجیان د زمزم اُبۀ راوړی-

کوپی:(کُو-پی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کان پټۍ سره یو ځایُ د اَسپې پۀ سترګو لګېدلې د څرمنې پټۍ چې یو خوا بل خوا نۀ شی کتے- (۲)د زنانوؤ کالے چې غوږونو سره تړلے زی-

کوپے:(کُو-پے)اسم- واحد- مذکر- د غوا لوشلو لوښے-

کوپے:(کو-پے)اسم صفت- قبے- شاټیټے- کبے- قب لرونکے- جمع کوپی-

کوپے:(کُو-پے)اسم- واحد- مذکر- پۀ زمکه کښې وړوکے ږغے- پۀ زمکه کښې وړوکے کډیان- جمع کوپی-

کوَت:(کوَت)اسم صفت- تش- تش کېډے-

کوت:(کوت)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)کونجې- ګُنجې- کونجلګ- کرملې- (۲)مراوے- جینګ- (۳- اسم)شکمن کېدنه-

کوتار:(کو-تار)اسم صفت- مصروف- مشغول- ګرفتار- مبتلا- ګوتار- اخته- بندیوان- شابوکی- توغ- تېرۀ کېدنه- سوربدنه- تاڼ-

کوتان:(کو-تان)اسم- واحد- مذکر- (۱)کتنه- غړی- (۲)شپول- دالان- د کړو بیزو د بچو ساتلو ځایُ-

کوتاه:(کو-تاه)اسم صفت- وړوکے- لږ- کم- لنډ- (م- فارسی)-

کوتاه اندېش:(کو-تاه-اَن-دېش)اسم صفت- بې تدبیره-

کوتاه بین:(کو-تاه-بین)اسم صفت- احتیاط نۀ کونکے- لۀ احتیاطه کار نۀ اخستونکے- کوتاه نظر-

کوتاه فکر:(کو-تاه-فِ-کر)اسم صفت- کم فکره- بې سوچه او بې فکره کار کونکے-

کوتاه قد:(کو-تاه-قد)اسم صفت- لنډے- کم قد لرونکے- پۀ ونه وړوکے-

کوتاه نظر:(کو-تاه-نه-ظر)اسم صفت- وګورئ کوتاه بین-

کوتاهی:(کو-تا-هی)اسم- کمے- کموالے- لنډوالے-

کوتخه:(کوت-خه)اسم- واحد- مذکر- کرت- وچ پنیر- قرت-

کوتر:(کو-تر)اسم- واحد- مذکر- کونتر- مؤنث کونتره- جمع کوتران-

کوترغاړے:(کو-تر-غا-ړے)اسم صفت- د کوترې پۀ شان څټ لرونکے- جمع کوترغاړی-

کوتره:(کو-ته-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کوتر-

کوتره:(کوت-ره)صفت- ټوټې ټوټې- ذرې ذرې- (۲)ګیاه چې وړه وړه کړے شوې وی-

کوتریکے:(کوت-ری-کے)اسم تصغیر- کوترے- ورکوټے سپے- جمع کوتریکی-

کوترے:(کوت-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د سپی بچے- وړوکے سپے- کوکرے- کونګرے- (۲)یو بوټے او د هغه بوټی ګل-

کوتړه:(کوت-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګوډانه- د ترخ جیب- د پړې جیب- (۲)یو قسم غرنیز بوټے چې لوئ ډنډر لری-

کوت غالے:(کوت-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- د غرۀ پۀ لمنه کښې وړوکے غُندې ځایُ-

کوتک:(کو-تک)اسم- واحد- مذکر- (۱)غټه ډنډا- څوباړے- لوړ- ډانګ- سرښاخ- (۲- صفت)احمق- نادان- بېوقوف- جمع کوتکونه-

کوتکمار:(کو-تک-مار)اسم صفت- د کوتک وهلو ماهر- ډنډه مار- غُنډه ګر- د کوتک ماری فنکار-

کوت کوت:(کوت-کوت)اسم مرکب- کُنجې کُنجې- کونجې کونجې- وِل وِل- چې مهین او هوار نۀ زی-

کوتکے:(کو-ته-کے)اسم تصغیر- وړوکے کوتک- سوټے- ډنډه- بېنت- کوتکوټے- لنډے لوړ-

کوتل:(کُو-تَل)مصدر- (۱)حلالول- ذبح کول- (۲)پرېکول- د څناورو نه پۀ لاسونو څرمن وېستل- ټوټه ټوټه کول- چور چور کزل-

کوتل:(کو-تل)اسم- واحد- مذکر- دره- د غرۀ د پاسه د تلو لار-

کوتلے:(کوت-لے)اسم- واحد- مذکر- د خرۀ وړوکے بچے-

کوتلے:(کُو-تۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع کوتلی- مؤنث کوتلې- وګورئ کوتل-

کوتن:(کُو-تن)حاصل مصدر- وګورئ کوتل-

کوتندری:(کو-تند-ری)اسم- واحد- مؤنث- چال- رفتار-

کوتنه:(کُو-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کوتل-

کوتنه:(کو-تۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- کوتنۍ- یوه آبی غټه مښوکه لرونکې مرغابۍ چې وازده یې ډېره قیمتی زی-

کوتنۍ:(کو-تۀ-نۍ)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کوتنه-

کوتوالی:(کوت-وا-لی)اسم- واحد- مؤنث- څوکی- چوکۍ- پېکټ- تانه- د کوتوال یا د پولیس د تانېدار دفتر یا قچری-

کوته سائی:(کو-ته-سا-ئی)اسم- د سا تنګېدنه- ساه لنډے- دمه- پۀ سینه کښې د سا ډېر پۀ خوارو تلنه راتلنه-

کوتی:(کُو-تی)اسم صفت- حلال- بح- قصابی-

کوتی:(کو-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوټ- زاویه- (۲)اسم صوت-

دَ ورکوټې کُوترې دَ رابللو آواز- (۲)وړوکې ماشوم ته دَ مینې توری-

کوتی لال:(کو-تی-لال)اسم- واحد- مذکر- یو تریخ بوټے چې غنډې پاڼې او سرې سرې غنډې دانې لری او پاڼه ئې دانه وغېره باندې دَ پټې پهٔ طور ایښوے شی- نباتاتی نوم ویتانیه سومنی فېرا (WITHANIA SOMNIFERA)-

کوتې:(کو-تې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړوکې کنده- وړوکے ږوغل- (۲)یو قسم بوټے- (۳)چوغنه-

کوتے:(کو-تے)اسم- واحد- مذکر- (۱)قتے- دَ زنې قتے- (۲)وړوکې کنده- کنده-

کوټ:(کوټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)حصار- قلعه- کړ- (۲- اسم صوت)کورټ- دَ چرګې آواز- کوړت کوړت- کړ کړ-

کوټ :(کوټ)اسم- واحد- مذکر- مشهور لباس چې خلق ئې دَ جامو دَ پاسه پهٔ ژمی کښې اچوی- (م- انګریزی)-

کوټ:(کوټ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- نیمچه زیړ- یو دمات چې دَ زیړو پهٔ شان وی او پهٔ سرو کښې ګډولے شی-

کوټاغه:(کو-ټا-غه)اسم- واحد- مؤنث- بوډۍ ښځه-

کوټانګر :(کو-ټانګ-ګر)اسم- واحد- مذکر- هغه څوک چې پهٔ مزدورۍ باندې وریژې صفا کوی-

کوټانۍ:(کو-ټا-نۍ)اسم تصغیر- وړه کوټه- کوټګۍ- کوټنۍ-

کوټ بند :(کوټ-بند)اسم- واحد- مذکر- هغه ځائې یا آله چې جامې پرې ځوړندولے شی-

کوټ بنګار :(کوټ-بنګ-کار)اسم صفت- کوټ او زیړ- چې سرهٔ نهٔ وی- جس- زیړ- سپین- پیتل- وغېره- کانسی- اژدهات- ارزان او نیمچه غنډې زیړ- جست-

کوټخه:(کو-ټه-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د غوړونو ټوپۍ- هغه ټوپۍ چې غوړونه هم پکښې پټولے شی- (۲)پوزبند-

کوټخه:(کو-ټه-خه)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- کوټګۍ- وړه کوټه- چوپال-

کوټرند :(کوټ-رند)اسم- واحد- مذکر- قلعه بند- اساوے-

کوټ ساب:(کوټ-ساب)اسم- انګرمشر- کوټ مشر- (افغانستان)-

کوټک:(کو-ټک)اسم- واحد- مذکر- (۱)څټ- (۲)کټمل- (۳)بې هنره- (۴)دَ یوې یوه حصه- (۵)زنخدان- دَ زنې ژور ځائې- کوتے-

کوټکۍ :(کوټ-کۍ)اسم- واحد- مؤنث- حجره-

کوټکۍ :(کوټ-کۍ)اسم تصغیر- واحد- مؤنث- (۱)کوټنۍ- کوټکۍ- ورکوټې کوټه- (۲)دَ ماشومانو دَ کورکو وړې وړې کوټې-

کوټکے:(کوټ-کے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- (۱)وړوکې کوټه- وړوکې قلعه- (۲)وړوکے کوټ-

کوټل:(کو-ټل)مصدر- (۱)وهل- ټکول- نړول- چور چور کول- قیمه کول- پهٔ زور ایښودل یا ځایول- دربل- (۲)بدول- اندیښمن کول- غمول- (۲)رټل- رټل کوټل- (۴)کوتره کول-

کوټن:(کو-ټن)حاصل مصدر- وګورئ کوټل-

کوټنګ:(کو-ټنګ)حاصل مصدر- وګورئ کوټل-

کوټنه:(کو-ټهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کوټل-

کوټنۍ:(کوټ-نۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سر- کپرۍ- (۲)خیال- (۳)اوچت-

کوټنۍ:(کو-ټه-نۍ)اسم- کمینه- دَ رنګ لهٔ وجې نه توررنګے-

کوټنۍ :(کو-ټه-نۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)د چرګو کوټه- چرګ خانه- (۲)الوګو وهلې کوټه-

کوټوال:(کوټ-وال)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ قلا محافظ- (۲)دَ کلی څوکیدار- (۲)نائب-

کوټوبے:(کو-ټو-بے)اسم- واحد- مذکر- دَ لیندې چپتاخ- پټق- کویتے- کوټولے-

کوټول:(کو-ټه-ول)مصدر- ډېرے کول- دلۍ کول- خره کول- پړی کول-

کوټولے:(کوټ-و-لے)اسم- واحد- مذکر- چپتاخ- پټق- پټاخ- دَ لیندې هغه ځائې چې کاڼے پکښې ږدی- کوټوبے-

کوټولے:(کو-ټه-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کوټولی- مؤنث کوټولې- وګورئ کوټول-

کوټون:(کو-ټه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کوټول-

کوټونکے:(کو-ټه-وون-کے)اسم فاعل- جمع کوټونکی- مؤنث کوټونکې- وګورئ کوټول-

کوټونکے:(کو-ټون-کے)اسم فاعل- جمع کوټونکی- مؤنث کوټونکې- وګورئ کوټل-

کوټونګ:(کو-ټه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کوټول-

کوټونه:(کو-ټه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کوټول-

کوټوهٔ:(کو-ټه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کوټول-

کوټه:(کو-ټه)اسم صفت- یو کم ذاته سپے- دَ تازی ضد-

کوټه:(کو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وسېدو کمره- جمع کوټې-

کوټه:(کو-ټه)اسم صفت- ناخالص- ارکجه- جمع کوټګان-

کوټه:(کو-ټه)اسم- (۱)چې وخت پرې تېر وی- بې کاره- دَ کره ضد- (۲)کرم- لټ- (۲)ناخالصه زر- خرابه پیسه- (۴)دوکه باز سړے- نقلی-

کوټه:(کو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- انبار- ډېرے- ډېر زیات- دَ غنمو دلۍ- جمع کوټې-

کوټه توب:(کو-ټه-توب)اسم- کوټه کېدنه- قلپ کېدنه- دَ کره توب ضد-

کوټه چی:(کو-ټه-چی)اسم- واحد- مذکر- دَ کوټې څوکیدار-

کوټه کریانه:(کو-ټه-کر-یا-نه)اسم صفت- منحوسه- محتاجه- بدنصیبه- اکثر پهٔ خبرو کښې استعمالېدونکے توری- جمع کوټه کریانې-

کوټه ګۍ:(کو-ټه-ګۍ)اسم- واحد- مؤنث- کوټنۍ- وړه کوټه- کوټنۍ-

کوټۍ:(کو-ټۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لوئې کوټ- شغه- چُغه- (۲)سر- (۳)خرکره- (۴)کوچی- (۵)کارخانه- (۶)کوټه-

"ی" (خی-رل)، "ې" (مې-ره-ول)، "ۍ" (پیا-لۍ)، "ئ" (تن-دئ) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کوټیالي:(کوټ-یا-لي)اسم- واحد- مؤنث- دَ زرګرانو دَ زرو ویلو کولو دَ پاره پکارونکی وړه پیالي-

کوټیاني:(کو-ټیا-ني)اسم- واحد- مؤنث- دلال ګره- دلال ماره- هغه ښځه چې دَ بدعملی لهٔ پاره ښځې دَ کورونو څخه راوباسي- مکاره- کنجره- کاسیره- بدلمنه-

کوټی دار:(کو-ټی- دار)اسم صفت- دَ ډېرو کوټیو څښتن- دَ حویلو او بنګلو مالک-

کوټی وټی:(کو-ټي-وَ-ټي)اسم مرکب- (۱)دلي دلي- ډېرې ډېرې- رشې رشې- خرې خرې- (۲)خوارهٔ وارهٔ- یو ځائ بل ځائ-

کوټیه:(کو-ټي-یه)اسم صفت- (۱)کوټه سپے- تیندک سپے-

کوټېدل:(کو-ټې-دل)مصدر- کړکېدل- چرګه لهٔ اګیو بندېدل- کړوکېدل-

کوټېدن:(کو-ټې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کوټېدل-

کوټېدنګ:(کو-ټې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کوټېدل-

کوټېدنه:(کو-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کوټېدل-

کوټېدهٔ:(کو-ټې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کوټېدل-

کوټی:(کو-ټی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بېنک- صراف خانه- (۲)غټه لویه بنګله- (۳)کوټې چرګه- کوټه چرګه- (۴)دَ توپک یا دَ توپې هغه ځائ چې دارو سیکه پکښې ډکیږي- (۵)دَ کښتې هغه ځائ چې غمے پکښې وړي- (۶)سرکوپی-

کوټے:(کو-ټے)اسم- واحد- مذکر- کوچے- خرګے- (۲)تندے- سر- ککره- ککری- ټنډه- (۳)کوړ- (۴)زرکوټے- وړوکے-

کوټے:(کو-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ لرګو نه جوړ شوے کندو- دَ غلې کوټه چې دَ لرګیو نه جوړه شوې وي-

کوټے لیخه:(کو-ټے-لي-خه)اسم- واحد- مؤنث- زنځیزې- دَ چلغوزی دَ چکی نه تاؤ پرده چې چکی پکښې بنده وي-

کوثر:(کَو-ثر)اسم- واحد- مذکر- دَ جنت دَ یو حوض نوم- (م- عربي)-

کوجک:(کو-جک)اسم- څېه- څنکه- سنه- سنکه- دَ زلفو ول-

کوجکی:(کو-جه-کي)اسم- واحد- مؤنث- دوه وارهٔ لرګی-

کوجن:(کو-جن)اسم صفت- واحد- مذکر- تپلے- تپی مخے-

کوجی:(کو-جي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کمڅې- کونځې-

کوچ:(کوچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سفر- یون- تګ- تلهٔ- (۲)کچ- هغه غوړ چې دَ ماستو شاربلو سره پېدا کیږي-

کوچټ:(کو-چټ)اسم صفت- وړوکے ملک-

کوچټ توب:(کو-چټ-توب)اسم- وړوکوالے- دَ ماشوموالی وخت-

کوچر:(کو-چر)اسم صفت- وګورئ ارجل-

کوچری پوچری:(کوچ-ري-پوچ-ري)اسم صفت- بچ کچ- وارهٔ زارهٔ- دَ ماشومانو پهٔ یو ځائ راغنډېدنه-

کوچکارل:(کوچ-کا-رل)مصدر- سپے ځانته راغښتل-

کوچکارلے:(کوچ-کا-رهٔ-لے)اسم مفعول- جمع کوچکارلی- مؤنث کوچکارلې- وګورئ کوچکارل-

کوچکارن:(کوچ-کا-رن)حاصل مصدر- وګورئ کوچکارل-

کوچکارنګ:(کوچ-کا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ کوچکارل-

کوچکارنه:(کوچ-کا-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کوچکارل-

کوچکارونکے:(کوچ-کا-رون-کے)اسم فاعل- جمع کوچکارونکی- مؤنث کوچکارونکې- وګورئ کوچکارل-

کوچکارهٔ:(کوچ-کا-رهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کوچکارل-

کوچلاغ:(کوچ-لاغ)اسم- هغه ځائ یا هغه احاطه چې دَ شپې پکښې ګډې چېلی بندولے شي-

کوچلانه:(کوچ-لا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه لوښے چې پکښې غوړی جمع کولے شي-

کوچمال:(کوچ-مال)اسم- دَ روانېدو وخت- پهٔ سفر دَ تلو وخت-

کوچنډ:(کو-چنډ)اسم- دَ ځناور بچے- دَ ګیدړ، لېوهٔ وغېره بچے-

کوچنړے:(کو-چن-ړے)اسم- واحد- مذکر- کوچانړے- دَ خرهٔ وړوکے بچے- جمع کوچنړی-

کوچنوټے:(کوچ-نو-ټے)اسم صفت- کوچنے- وړوکے- جمع کوچنوټي-

کوچنیواله:(کوچ-نی-وا-له)اسم- دَ وړوکوالی زمانه-

کوچنیتوب:(کوچ-نی-توب)اسم- وړوکوالے-

کوچنے:(کوچ-نے)اسم صفت- وړوکے- وړوکے بچے-

کوچوان:(کوچ-وان)اسم- واحد- مذکر- ټانګه وغېره چلونکے-

کوچوټے:(کو-چو-ټے)اسم تصغیر- واحد- مذکر- کشر- وړوکے- کوچنے- کمکے- جمع کوچوټي-

کوچوکے:(کو-چو-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ارغومے-

کوچو مرغی:(کو-چو-مر-غي)اسم- واحد- مؤنث- ژرانګه- یو زیړ رنګ لرونکې مرغی-

کوچه:(کو-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څمڅې- کاچوغه- کاشوغه- (۲)ریشه- (۳)چمچه مار- منکور-

کوچه:(کو-چه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خرونو دَ یو مرض نوم- جمع کوچې-

کوچه مار:(کو-چه-مار)اسم- واحد- مذکر- اژدها- غټ مار- بلا-

کوچیانے:(کوچ-یا-نے)اسم- واحد- مذکر- خانه بدوش- چې کډه ګرځوي- کډمار- کوچے-

کوچېدل:(کو-چې-دل)مصدر- یو ځائ نه بل ځائ ته کډه اوړل-

کوچېدن:(کو-چې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کوچېدل-

کوچېدنګ:(کو-چې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کوچېدل-

کوچېدنه:(کو-چې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کوچېدل-

کوچېدونکے:(کو-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کوچېدونکی- مؤنث کوچېدونکې- وګورئ کوچېدل-

کوچېدهٔ:(کو-چې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ کوچېدل-

کوچۍ:(کُو-چۍ)اسم- واحد- مؤنث- بُرش- دُ وېښتو قلم- پوچۍ- دُ سفېدی کولو یا دېوالونه پهٔ چونه سپینولو دُ پاره دُ منجو برش یا پُوچۍ- جاروګی- چوچۍ-

کوچے:(کو-چے)اسم صفت- واحد- مذکر- خانه بدوش- کوچیانے- مؤنث کوچۍ-

کوچے:(کو-چے)اسم- واحد- مذکر- (۱)روانګی- رفتار- (۲- صفت)تش- ړږ- پهٔ مېنځ کښې بالکل تش- (۲)احول- چپک سترګے-

کوچے:(کُو-چے)اسم- واحد- مذکر- دُ خرهٔ وړوکے بچے- کوچانے- کوتے-

کوځ:(کوځ)اسم- واحد- مذکر- امبار- دُ خشاک غټ ډېرے-

کوځر:(کو-ځر)اسم- واحد- مذکر- وزر- پر- ځانګ-

کوځره:(کو-ځه-ره)اسم- واحد- مؤنث- کوځړه- پېزار- کپۍ- پنه- موچڼه- ځپلۍ- کېړۍ- چپړه- دُ لرګی ځپلۍ- جمع کوځرې-

کوځړه:(کو-ځه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ کوځره- (۲)ککری- جمع کوځړې-

کوځکه:(کُو-ځه-که)اسم- واحد- مؤنث- کوځه- نانځکه-

کوځکے:(کوځ-کے)اسم صفت- کوچانے- کوچے-

کوځه:(کُو-ځه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نغری سره دُ خشاک اېښو چُوله- جالګے-

کوځه:(کُو-ځه)اسم- واحد- مؤنث- کوچه- دُ محلې دننه دُ تلو راتلو تنګه لاره- جمع کوځې-

کوځه:(کو-ځه)اسم- واحد- مؤنث- همت- جدوجهد- کوشش-

کوځه:(کُو-ځه)اسم- واحد- مؤنث- کمځۍ- کوځۍ- کونځۍ- جمع کوځې-

کوځه بند:(کُو-ځه-بَند)اسم- چې دُ کوځې یا ګلۍ حدبندی شوې وی-

کوځه درب:(کو-ځه-دَرب)اسم صفت- اواره ګرد- فضول ګرځېدونکے- کوځه ډب- اواره- جمع کوځه دربی- مؤنث کوځه دربه-

کوځه ډب:(کو-ځه-ډَب)اسم صفت- وګورئ کوځه درب-

کوځه ګښت:(کو-ځه-ګښت)اسم- (۱)کوځه ګشت- پهٔ کوځه کښې ګرځېدنه- (۲)څوکیداری-

کوځۍ:(کُو-ځۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کونځۍ- کمځۍ-

کوخته:(کوخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- پڼه- پېزار- جمع کوختې-

کوخک:(کو-خک)اسم- کیخے- دُ ماشومانو پهٔ بولو کښې دُ سپین رنګ چینجے- کوخکه-

کوخکه:(کو-خه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کوخک-

کودالۍ:(کو-دا-لۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کُداله- سسکوره- تسکوره-

کودر:(کو-دَر)اسم- واحد- مذکر- کودرے- ټیکرے- جمع کودرونه/کودری-

کودرکے:(کو-دَر-کے)اسم- واحد- مذکر- کوډرے- کودرے- جمع کودرکی-

کودرے:(کُو-دهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کودر- جمع کودری-

کوډرکے:(کُو-ډَر-کے)اسم- واحد- مذکر- کودرکے- کودرے- کودے- ټیکرے- کوډرے- جمع کوډرکی-

کوډره:(کُو-دهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کوداله- دُ زمکې کنستلو یو اوزار-

کوډرے:(کُو-دهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کوډرکے- جمع کوډری-

کودک:(کُو-دَک)اسم صفت- دُ تی ماشوم- وړوکے ماشوم- کوچنے- وړوکے- (م- فارسی)-

کودن:(کو-دَن)اسم صفت- بې شعوره- احمق- کم عقل- پوهاړ- بې وقوف- ګیدی خر- نادان- پلمند- ابله- (م- فارسی)-

کوده:(کُو-ده)اسم- واحد- مؤنث- قوده- دُ ریبلی شوی فصل یا واښهٔ هغه مقدار چې پهٔ موټی کښې راځی-

کوده:(کو-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دُ غلو دانو یو قسم- (۲)یو قسم بوټے- ملون- خشیاره- ستری-

کودیک:(کو-دیک)اسم- واحد- مذکر- دُ خاورې جوړه شوې یو قسم کټوی-

کودے:(کو-دے)اسم- واحد- مذکر- کودرے- کودنے- کودر- کودرکے- کوډرے- (۱)تبغنه- تبی- تبخے- (۲)دُ کلال دُ جوړ کړی خاورین څیز ټوټه چې ښهٔ پهٔ پجه کښې پخه شی- (۳)دُ ټیکری دُ لوښی ماته ټوټه- ټیکرے- (۴)دُ کړوسی خوې- (۵)ختین کنډال یا دُ اُسپنې کړنے چې بټیاران پکښې نینې کوی- بټ- جمع کودی-

کوډ:(کوډ)اسم- کوډې- سحر- جادو-

کوډال:(کو-ډال)اسم- ګاونډ- پاړه-

کوډچل:(کوډ-چَل)اسم- کوډې- جادو- طلسم- سحر-

کوډچل پوهه:(کوډ-چل-پو-هه)اسم- واحد- مؤنث- دُ جادو علم- دُ طلسماتو علم- (افغانستان)-

کوډخل:(کوډ-خَل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کوډخه-

کوډخه:(کُو-ډهٔ-خه)اسم- واحد- مؤنث- وړوکے شان کور- کوډخل- کچه شان کور- چوغالے- کوډغالے- کوډغاله- کوډغل- جمع کوډخې-

کوډر:(کو-ډَر)اسم- پاړه- چاړی- چاړی-

کوډغاله:(کوډ-غا-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کوډخه- جمع کوډغالې-

کوډغل:(کوډ-غَل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کوډخه-

کوډکه:(کُو-ډهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ وښو جوړه جونګړه- جوپړی-

کوډګر:(کوډ-ګَر)اسم صفت- ساحر- جادوګر- مؤنث کوډګره- جمع مؤنث کوډګرې-

کوډګری:(کوډ-ګهٔ-ری)اسم- جادوګری- ساحری- پاړوګری-

کوډل:(کو-ډل)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ کوډخه- (۲)هغه دُ لاسکی اُوږد سیخ چې بټی، دُ کانی نغری یا تنور نه پرې ایره یا اور راوکښے شی- (۳)څپر-

کوډلوبے:(کوډ-لو-بے)اسم- واحد- مذکر- (۱)جادوګر- سحرګر- (۲)شعبده باز-

کېدنګ:(کہ-دِې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ کېدل-

ګېدنګ:(ګَ-دِې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ګېدل-

کېدنه:(کہ-دِې-دَ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کېدل-

ګېدنه:(ګَ-دِې-دَ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ګېدل-

کېدونکے:(کہ-دِې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کېدل-

ګېدونکے:(ګَ-دِې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ګېدل-

کېدهٔ:(کہ-دِې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کېدل-

ګېدهٔ:(ګَ-دِې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ګېدل-

کېبر:(کہ-بېر)اسم- واحد- مذکر- کږ- کهون-

کېبره:(کہ-بې-ره)صفت- واحد- مؤنث- جُنګ- ارګجه- کابېره- ګډوډ- مخلوط-

کېبرے:(کہ-بې-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګروبے-

کېبله:(کہ-بې-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګډله-

کېبوه:(کہ-بې-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کوزه- (۲)کډوی- پیاله- لوټه یا کنډول چې د منګی نه پرې اُبهٔ څښلے شی- (۳)کڅوړه-

کېي وېي:(کہ-بې-وه-بې)اسم- جمع- مؤنث- کاواکې- اوتې بوتې-

کېبے:(کهٔ-بے)اسم- واحد- مذکر- بنکره ور جنګی ګډ-

ګذار:(ګُ-ذار)حاصل مصدر- دَ ګذاشتن مصدر نه امر او حاصلِ مصدر- پرېښودنه-

ګذار:(ګُ-ذار)اسم- واحد- مذکر- ضرب وهنه- پهٔ چا ګذار کونه- ګذار ورکونه-

ګذارش:(ګُ-ذا-رش)اسم- واحد- مذکر- (۱)پرېښودنه- (۲)چا ته خپل حال بیانونه- (۳)عرض معروض بیانونه-

ګذارل:(ګُ-ذا-رل)مصدر متعدي- ادا کول- پوره کول- سر ته رسول-

ګذارول:(ګُ-ذا-ره-وَل)مصدر متعدی- غرځول- لرې کول- څهٔ څیز لهٔ پاس نه ښکته یا لهٔ ښکته نه پاس غرځول-

ګذاره:(ګُ-ذا-ره)اسم- واحد- مؤنث- ساعت تېرے- وخت تېرونه- چلن- ګزاره-

ګذارېدل:(ګُ-ذا-رې-دَل)مصدر لازم- (۱)ادا کېدل- پوره کېدل- (۲)غرځېدل- پرېوتل-

ګذر:(ګُ-ذر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګزر-

ګذران:(ګذ-ران)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګزران-

ګذشت:(ګُ-ذشت)اسم- واحد- مذکر- حوصله- بُردباری-

ګذشته:(ګُ-ذش-ته)صفت- مذکر/مؤنث- تېر شوے- سابقه- اوړېدلے- وروستو پاتې-

ګر:(کر)اسم- واحد- مذکر- ظُلم- مصیبت- غم- سختـه-

ګر:(ګر)اسم- واحد- مذکر- خارښ- دَ خارښ بیماری-

ګر:(ګر)اسم- واحد- مذکر- چل- هنر- داؤ- جمع ګرونه-

ګر:(ګر)لاحقه- دَ اسم فاعل ترکیبی علامت لکه جادوګر، داروګر، بزرګر-

ګر:(ګر)اسم صوت- واحد- دَ کپړې دَ شلېدو اواز- دَ کپړې دَ ریښې کېدو اواز-

ګرا:(ګرا)اسم- واحد- مذکر- (۱)غلام- نوکر- مرئے- (۲)نائی- (۳)یو قسم ببلچه- چاړی-

کراب:(کہ-راب)اسم- واحد- مذکر- دَ ښناورو یو مرض- تبق- تبخ-

کراته:(کہ-را-ته)اسم- واحد- مؤنث- څپاکه- جمع کراتې-

کراج:(ک-راج)اسم- واحد- مذکر- دَ موټر وډرولو دَ پاره ځایٔ- جمع ګراجونه-

کراری دار:(کہ-را-ری-دار)صفت- واحد- مذکر- کراری لرونکے- هغه چې کراری پکښې وی- مؤنث کراری داره-

کراری:(کہ-را-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- غاښونه لرونکې کاپینی چې مشینونو ګرځولو کښې پکار راځی- کراړی-

کراړی:(ک-را-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ کراری-

ګرام:(ګرام)اسم- واحد- مذکر- دَ وسېدو ځایٔ- کلے- موضع- سیمه- پاټوبے- ګرامه-

ګرام:(ګرام)اسم صفت- واحد- مذکر- ګرم- پړ- ملامته-

ګرام:(ګرام)اسم- واحد- مذکر- پهٔ اعشاری نظام کښې دَ وزن یوه اکائی- دَ کلو ګرام زرمه برخه-

کرام:(ک-رام)اسم صفت- مذکر- وګورئ کرامی-

ګرامر:(ګرا-مر)اسم- واحد- مذکر- دَ ژبې دستور- دَ ژبې قواعد و ضوابط- دَ صرف و نحو علم-

ګرامفون:(ګرا-مه-فون)اسم- واحد- مذکر- یو مشینی آله چې لهٔ ریکارډ نه اواز وُباسی-

ګرامه:(ګرا-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګرام-

کرامی:(ک-را-می)اسم صفت- واحد- مذکر- محترم- عزتمند- بزرګ- قدرمند- ښاغلے- (م- فارسی)-

ګران:(ګران)صفت- واحد- مذکر- (۱)دَ اسان ضد- مشکل- (۲)خوږ- خوښ- (۳)قیمتی- (۴)سخت- تکلیف ده- (۵)دروند- نایاب- مؤنث ګرانه- (م- فارسی)-

ګران بها:(ګران-بہ-ها)اسم مرکب- ګران بیه- قیمتی- نایاب- بې بها- بې قیمته- (م- فارسی)-

ګران بیه:(ګران-به-یه)اسم مرکب- قیمتی نایاب- ګران بها-

ګرانتوب:(ګران-توب)اسم- واحد- مذکر- ګرانښت- ګرانی- ګرانوالے- ګرانتیا- (۱)مشکلوالے- (۲)خوږوالے- خوښی- (۳)ډېر قیمت لرنه- (۴)سختی- تکلیف- (۵)دروندوالے- نایابی-

ګرانتیا:(ګران-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګرانتوب-

ګرانښت:(ګرا-نښت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګرانتوب-

ګران فروش:(ګران-فه-روش)اسم صفت- پهٔ ګرانه بیه خرڅونکے- سودا ګرانه

یَ (ځی-رل)، ېَ (مې-ره-وَل)، یَ (پیا-لی)، ےَ (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

خرڅونکے- (م- فارسي)-

گران مایه:(گران-ما-یه)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)د لوئ مرتبې خاوند- لویه مرتبه لرونکے- معزز- قدرمند- (۲)قیمتي- نایاب- (م- فارسي)-

گرانوالے:(گران-وا-لے)اسم- مذکر- وګورئ گرانتوب-

گرانول:(گرا-نه-وَل)مصدر متعدي- نرخ خېژول- بیه، قیمت زیاتول- (۲)خوښول- (۳)سختول- مشکلول- (۴)نایابول-

گرانون:(گرا-نه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ گرانول-

گرانونکے:(گرا-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ گرانول-

گرانونګ:(گرا-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ گرانول-

گرانونه:(گرا-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گرانول-

گرانه:(گرا-نه)اسم صفت- مؤنث- د گران مؤنث- وګورئ گران-

گرانه گراني:(گرا-نه-گرا-ني)اسم مرکب- د نرخونو یا د قیمتونو وچتوالے- گراني- گرانتوب-

گراني:(گرا-ني)اسم- واحد- مؤنث- گرانښت- گرانوالے- قیمت زیاتېدنه- نرخ زیاتېدنه-

گرانېدل:(گرا-نې-دَل)مصدر لازم- قیمت زیاتېدل- نرخ زیاتېدل- بیه زیاتېدل- (۲)خوښېدل- (۳)سختېدل- مشکلېدل- (۴)نایابېدل-

گرانېدن:(گرا-نې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ گرانېدل-

گرانېدنګ:(گرا-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ گرانېدل-

گرانېدنه:(گرا-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گرانېدل-

گرانېدونکے:(گرا-نې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ گرانېدل-

گرانېدۀ:(گرا-نې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ گرانېدل-

گراڼ:(گرا-ڼ)اسم- واحد- مذکر- خواست- اپیل- عرض-

گراوینه:(گرا-وي-نه)اسم صفت- کانه- کانټیز- د ضمانت په څېر اېښودے شوے یا ورکړے شوے- گرو-

گراوے:(گرا-وے)اسم صفت- خواست کونکے- اپیل کونکے- عرض کونکے- جمع گراوي-

گرامه:(گرا-مه)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم بېلچه- یُوم- جمع گرامې-

گرانے:(گرا-نے)کلمه تضاعف- دا کلمه د تضاعف یعني یو په دوه کېدو د پاره استعمالیږی لکه یو گرانے- دوه گرانے- دوچند کونه-

گرباده:(گر-با-ده)اسم- واحد- مؤنث- د پېریانو پولی- دېوباد- د باد چورلندے- بړبوکی-

گربت:(گر-بَت)اسم- واحد- مذکر- عقاب- گربته- باز- شاهین-

گربته:(گر-بَه-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ گربت-

گربره:(گر-بۀ-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه زمکه چې په ورومبی خل پکښې ایوه (یوې) شوې وی او غټې غټې لوټې پکښې وی- غټې غټې لوټې لرونکے سادین-

گربل:(گر-بل)اسم- واحد- مذکر- سوری شوې کېږې جال کونه- پنځرے- گرېبل- گرمېل- گرمل-

گربولے:(گر-بو-لے)اسم- واحد- مذکر- خراشکے- بلغم- جمع گربولي-

گربه:(گر-به)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ پیشو-

گربه خوراک:(گر-به-خو-رَک)اسم- واحد- مذکر- د یو قسم وښو نامه- یو ذات له وابنۀ-

گربینه:(گر-بی-نه)اسم- واحد- مؤنث- کبین- کبینۀ-

گربینے:(گر-بی-نے)اسم- واحد- مذکر- د وړو حشرو یا کېرړو جاله-

گربېټ:(گر-بېټ)اسم- واحد- مذکر- سوکړک- سکړک- د جوارو ووړی-

گربېل:(گر-بېل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ گربل-

گرپے:(گر-پے)اسم- واحد- مذکر- نازک بېخ لرونکے یو بوټے-

گرت:(گرت)اسم- واحد- مذکر- د دوو گټو تر مینځه فاصله-

گرتول:(گرۀ-ته-وَل)مصدر متعدي- (۱)په گرت کښې نیول- (۲)د لیندې پېښاخ راکښل- (۳)نښې ویشتو ته تیارول-

گرتون:(گرۀ-ته-وَن)حاصل مصدر- وګورئ گرتول-

گرتونکے:(گرۀ-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ گرتول-

گرتونګ:(گرۀ-ته-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ گرتول-

گرتونه:(گرۀ-ته-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گرتول-

گرتېدل:(گرۀ-تې-دَل)مصدر لازم- (۱)په گرت کښې نیولے کېدل- (۲)نښې ویشتو ته تیارېدل-

گرتېدن:(گرۀ-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ گرتېدل-

گرتېدنګ:(گرۀ-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ گرتېدل-

گرتېدنه:(گرۀ-تې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گرتېدل-

گرتېدۀ:(گرۀ-تې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ گرتېدل-

گرتے:(گر-تے)اسم- واحد- مذکر- گټمه-

گرج:(گرج)صفت- واحد- مذکر- کوږ- خم- د نېغ ضد- گروپ-

گرجمن:(گر-جۀ-مَن)اسم صفت- کینه ور- کینه لرونکے سړے-

گرخ:(گرخ)اسم- گرخېدنه- د گرخېدو دوړ-

گرخانه:(گر-خا-نه)صفت- واحد- مذکر- گرخنده- گرخېدونکے- (۱)چُرلېدونکے- تاوېدونکے- (۲)سېلانے- سیاح-

گرخن:(گر-خَن)صفت- واحد- مذکر- گرخانه- گرخېدونکے- گرخنده- گرخانده- گرخان- گرخینده- (۱)چُرلېدونکے- تاوېدونکے- (۲)سېلانے- سیاح- (۳)هغه ماشوم چې ایله ایله قدم اخلي-

گرخند:(گر-خَند)صفت- واحد- مذکر- وګورئ گرخن-

گرخندونے:(گر-خَن-دو-نے)اسم صفت- مذکر- وګورئ گرخن-

گرخنده:(گر-خَن-ده)صفت- واحد- مذکر- گرخېدونکے- گرخانه- گرخن-

(۱)تاوېدونکے- چُورلېدونکے- (۲)سپلانے- (۳)هغه ماشوم چې اېله اېله قدم اخستے شي-

گرخندے:(گر-خن-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لارې کوروالے- کږلېچ- (۲)دَ لوبو پړپرکے- بغندے- بغنداخے-

گرخنے:(گر-خه-نِے)اسم- واحد- مذکر- (۱)کښ چې بوڼ پرې غړي- چرخي- چاښي- څرخي- هغه څرخي چې وړغني پرې غښتلے کيږي- جمع گرخني- (۲)کج گردشي- (۳)گردني- (۴)هغه کوغالے چې په مېنځ کښې يې قرت جوړيږي-

گرخول:(گر-خه-وَل)مصدر متعدي- (۱)حرکت ورکول- چکر ورکول- څوک لهٔ لاسه نيول- او روانول- (۲)په چا سېل کول- (۳)حقدار ثابتول- (۴)بل طرف ته اړول- بې روخي اختيارول- (۵)گرخون کول- التې کول- باقي کول- قے کول-

گرخون:(گر-خه-وَن)حاصل مصدر- وُگورئ گرخول-

گرخون:(گر-خُون)اسم- واحد- مذکر- قے- التې- باقي-

گرخونگ:(گر-خه-وَنگ)حاصل مصدر- وُگورئ گرخول-

گرخونه:(گر-خه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وُگورئ گرخول-

گرخېدل:(گر-خې-دَل)مصدر لازم- (۱)روانېدل- حرکت کول- (۲)سېل کول- (۳)حقدار ثابتېدل- (۴)له ژبې اوړېدل- (۵)پله پربښول- بل طرف ته اوړېدل- (۶)دَ سر چُورلېدل-

گرخېدلے:(گر-خې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وُگورئ گرخېدل-

گرخېدن:(گر-خې-دَن)حاصل مصدر- وُگورئ گرخېدل-

گرخېدنگ:(گر-خې-دَنگ)حاصل مصدر- وُگورئ گرخېدل-

گرخېدنه:(گر-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وُگورئ گرخېدل-

گرخېدون:(گر-خې-دُون)اسم- واحد- مذکر- (۱)حرکت- گرخېدنه- (۲)سېل-

گرخېدهٔ:(گر-خې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وُگورئ گرخېدل-

گرخينده:(گر-خين-ده)اسم صفت- وُگورئ گرخن-

گرد:(گرد)اسم صفت- تمام- ټول- گرد- چارچاپېره- گېرچاپېره-

گرد:(گرد)اسم- واحد- مذکر- گرد- خاورې- دوړه- غُبار- خيرے- گرز- جمع گردونه-

گرد:(گرد)اسم صفت- واحد- مذکر- پهلوان- دلاور- بهادر- (م- فارسي)-

گرد:(گرد)اسم صفت- مذکر- (۱)غُنډے- گول- گرد- (۲)چيلم- مؤنث گرده-

گرداب:(گر-داب)اسم- واحد- مذکر- دَ اوبو چکر- چورلندے- گرداؤ- غُلې- غُولې- (۲)چټو- لنگرې- (۳)زخم- (۴)باڼپيچخ- يو قسم ټال- جمع گردابونه- (م- فارسي)-

گرداړه:(گر-دا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- گرداړے- غنهاره- غنهارې- هغه غنهاړے چې ماشومان پرې لوبې کوي- جمع گرداړې-

گرداړے:(گر-دا-ړے)اسم- جمع گرداړې- وُگورئ گرداړه-

گرداگر:(گر-دا-گر)اسم صفت- مرکب- گرداگرد- (۱)په څلور طرفه گېر چاپېره- تاؤ راتاؤ- چار چاپېره- (۲)ړک- معمور- محيط- گرداگړ- گرداگرد-

گرداگرد:(گر-دا-گرد)اسم صفت- مرکب- وُگورئ گرداگر-

گردان:(گر-دان)اسم- واحد- مذکر- صيغې دَ ترتيب مطابق سر دوباره کونه- بيا بيا وئيئه- جمع گردانونه- (م- فارسي)-

گردان:(گر-دان)صفت- مذکر- (۱)گرخېدونکے- تاوېدونکے- (۲)اړولے- الوړے- گرخولے شوے- (م- فارسي)-

گردانگ:(گر-دانگ)اسم- واحد- مذکر- دَ جولاگانو يوه اله- جمع گردانگان-

گردانول:(گر-دا-نه-وَل)مصدر متعدي- دَ مصدر صيغې بيانول- سر دوباره کول- يادول- دَ درسونو گردان کول- يادول-

گردانون:(گر-دا-نه-وَن)حاصل مصدر- وُگورئ گردانول-

گردانونکے:(گر-دا-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وُگورئ گردانول-

گردانونگ:(گر-دا-نه-وَنگ)حاصل مصدر- وُگورئ گردانول-

گردانونه:(گر-دا-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وُگورئ گردانول-

گردانېدل:(گر-دا-نې-دَل)مصدر لازم- گردش کښې کېدل- تاوېدل- (۲)يادېدل- سر دوباره وئيلے کېدل- بيا بيا وئيلے کېدل-

گردانېدن:(گر-دا-نې-دَن)حاصل مصدر- وُگورئ گردانېدل-

گردانېدنه:(گر-دا-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وُگورئ گردانېدل-

گردانېدهٔ:(گر-دا-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وُگورئ گردانېدل-

گرداؤ:(گر-داؤ)اسم- واحد- مذکر- وُگورئ گرداب-

گردباد:(گرد-باد)اسم مرکب- سيلي- طوفان- هغه سيلي يا هوا چې گرد دَ ځان سره الوځوي- گرگله-

گردسره:(گرد-سه-ره)متعلق فعل- ټول- لهٔ سېلمې- بالکل- بېخي-

گردچاپېر:(گرد-چا-پېر)متعلق فعل- تاؤ راتاؤ- گېر چاپېر- چار چاپېر-

گردش:(گر-دش)اسم- واحد- مذکر- (۱)دور- (۲)چکر- سېل کونه- (۲)گرخېدنه- تبديلي اوړېدنه- جمع گردشونه- (م- فارسي)-

گردک:(گر-دَک)اسم- واحد- مذکر- تبر-

گردکه:(گر-دهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- دائره- جمع گردکې-

گردکے:(گر-ده-کے)اسم تصغير- وړوکے تبر- تبرگے- تبرکوټے- جمع گردکي-

گردکاړے:(گرد-کا-ړے)اسم- واحد- مذکر- وُگورئ گرکاړے-

گردلمے:(گرد-له-مے)اسم- واحد- مذکر- زيرگل لرونکے يو قسم واښهٔ-

گردماچو:(گرد-ما-چو)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ شنهٔ فصل بوس يا پاڼې-

گردمه:(گر-ده-مه)اسم- واحد- مؤنث- شپول-

گردمخے:(گرد-مه-خے)اسم صفت- غُنډ مخ لرونکے- دَ غُنډ مخ خاوند- جمع گردمخي-

ے(تن-دِيے)، ۍ(پيا-لۍ)، ې(هې-ره-وَل)، ى(خى-رل) تفصيل د باره وُگورئ تشريحات صفحه ۱

گردن:(گر-دن)اسم- واحد- مذکر- (۱)څټ- ورمېږ- مرۍ- (۲)دَ کوزې یا صراحي وغېره غړۍ- (م- فارسي)-

گردن کش:(گر-دن-کش)اسمِ فاعل/صفت- غاړه غړوُنکے- نافرمان- نامنونکے- (م- فارسي)-

گردن کشي:(گر-دن-که-شي)اسم- واحد- مؤنث- غاړه غړوُنه- نافرماني- نامننتوب- (م- فارسي)-

گردني:(گر-ده-ني)اسم- واحد- مؤنث- گردنے- نامزدگي- چغلبازي- دَ چنغول دَ چنغلې دَ مخ کتنې دَ پاره کېږې، رومان وغېره دَ سخر کور ته وړنه او دَ چنغلې ستر ماتونه- (افغانستان)- (۲)دَ کوژدنې نه پس دَ زوم سخر کره دَ څو ورځو دَ پاره دَ ېږه کېدو رسم-

گردنۍ:(گر-ده-نۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ کارتوسو پېټۍ- (۲)پهٔ څټ باندې تړپ ورکونه- (۲)پهٔ اَس باندې دَ اچولو جامې چې لهٔ څټ نه واخله دَ وروستیو پښو تر کیتو پورې وي- کتپه- غاړکې-

گردنے:(گر-دهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- وُکورئ گردني-

گردو:(گر-دو)اسم- واحد- مذکر- دَ بوټو تسکوره- دَ بوټو کودالي-

گردول:(گر-ده-ؤل)مصدرِ متعدي- غُنډول- ټولول- جمع کول-

گردومه:(گر-دو-مه)اسم- واحد- مؤنث- هاله- گردنۍ- تاؤ شوې کربښه-

گردون:(گر-ده-ؤن)حاصلِ مصدر- وُګوئ گردول-

گردون:(گر-دون)اسم- واحد- مذکر- اسمان څرخه- (۲)گرداؤ- چورلانډس-

گردونکے:(گر-ده-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وُګوئ گردول-

گردونګ:(گر-ده-وُنګ)حاصلِ مصدر- وُګوئ گردول-

گردونه:(گر-ده-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګوئ گردول-

گردونه:(گر-دو-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې دَ دوؤ کسانو پرې دعویٰ وي او دَ جګړې ختمولو پهٔ غرض بل څوک دربمګړے يې پهٔ نکاح واخلي-

گرده:(گر-ده)اسم صفت- مؤنث- دَ گرد مؤنث- وُګورئ گرد-

گرده:(گر-ده)اسم- واحد- مؤنث- غښتنه- سوال کونه- خواست-

گرده:(گر-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وُګورئ پښتورګے- جمع گردې- (۲)حوصله- همت- جرأت-

گرده:(گر-ده)اسم- واحد- مؤنث- خام چرس- کچه چرس- گرده- (۲)خاکه-

گرده:(گر-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)گردۍ- گړدۍ- شېول- هاله- حلقه- (۲)یو قسم خمبیره روټۍ- (۲)الهړے- ړاکه- ړکه- لوړ- کوتک- امسا-

گردۍ:(گر-دۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- دَ څرخې کاڼینۍ چې تار زیات نهٔ پربږدي- چرمکے- بورک-

گردۍ کنډوله:(گر-دۍ-کن-ډو-له)اسم- مؤنث- یو قسم واښهٔ- زېکۍ نار-

گردے:(گر-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)مندرے- پیشتکے- چیتکے- لنډے- (۲- اسم)گردۍ- گړدۍ- کردنۍ- هاله- (۲)دَ پتون مړوکے-

گرړ:(گرړ)اسم- واحد- مذکر- هغه اَس چې څلور واړه پښې او تندے يې سپین وي- باښ- سپملے- سپلکے-

گرړول:(گر-ړه-وُل)مصدرِ متعدي- (۱)رغړول- (۲)لهٔ څهٔ څیزه پهٔ زوره دَ درز اواز وېستل-

گرړولے:(گر-ړه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وُګورئ گرړول-

گرړون:(گر-ړه-وُن)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرړول-

گرړونکے:(گر-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وُګورئ گرړول-

گرړونګ:(گر-ړه-وُنګ)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرړول-

گرړونه:(گر-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرړول-

گرړېدل:(گر-ړې-دل)مصدرِ لازم- (۱)دَ څهٔ څیز نه پهٔ زوره اواز راوتل- (۲)رغړېدل-

گرړېدلے:(گر-ړې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع گرړېدلي- مؤنث گرړېدلې- وُګورئ گرړېدل-

گرړېدن:(گر-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرړېدل-

گرړېدنګ:(گر-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرړېدل-

گرړېدنه:(گر-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرړېدل-

گرړېدهٔ:(گر-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرړېدل-

گرړۍ:(گر-ړۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کیند کینداړۍ- دَ ملنګانو لباس-

گرړۍ:(گر-ړۍ)اسم- واحد- مؤنث- گرکاړۍ-

گرز:(گرز)اسم- واحد- مذکر- امسا- لوړ ړانګ- ړانګورۍ- کوتک-

گرز:(گرز)اسم- واحد- مذکر- گُرس- دُولس درخنه-

گرز:(گرز)اسم- واحد- مذکر- دوړه- خاوره- گرد- غبار-

گرزاند:(گر-زاند)صفت- واحد- مذکر- (۱)حرکت کونکے- گرځېدونکے- (۲)هغه ماشوم چې ایله گرځي-

گرزانده:(گر-زان-ده)اسم صفت- مؤنث- هغه ماده (څاروے) چې دَ نر سره دَ جوړه کېدلو باوجود هم بلاربه نهٔ شي- بېرته گرځېدونکې-

گرزندستورے:(گر-زند-ستو-رے)اسم- واحد- مذکر- گرځېدونکے ستورے- سیاره-

گرزندونے:(گر-زن-دو-نے)اسم- واحد- مذکر- اسمان- گرزون-

گرزندے:(گر-زن-دے)اسم- واحد- مذکر- وُګورئ گرځندے-

گرزنے:(گر-زه-نے)اسم- واحد- مذکر- وُګورئ گرځندے-

گرزول:(گر-زه-وُل)مصدرِ متعدي- وُګورئ گرځول-

گرزون:(گر-زون)اسم- واحد- مذکر- گرځون- قے- اُلټۍ- کانګه-

گرزهار:(گرز-هار)اسم- واحد- مؤنث- وُګورئ گرزهار-

گرزېدل:(گر-زې-دل)مصدرِ لازم- وُګورئ گرځېدل-

گرزېدلے:(گر-زې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وُګورئ گرځېدل-

گرزېدن:(گر-زې-دن)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرځېدل-

گرزېدنګ:(گر-زې-دنګ)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرځېدل-

گرزېدنه:(گر-زې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وُګورئ گرځېدل-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوڼ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ړو-بې-دهٔ)

گرزېدونکے:(گر-زې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوره گرځېدل-

گرزېده:(گر-زې-ده)حاصل مصدر- وګوره گرځېدل-

گرژول:(گر-ژه-ول)مصدر متعدی- وګوره بګاړول-

گرړول:(گر-ړول)مصدر متعدی- (۱)گرول- (۲)تراشل- توږل- په نوکونو باندې گرول- نوکارې کول-

گره:(گر-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خارښت- کهه- (۲)نوکاره- شوکاره-

گرړے:(گر-ړے)اسم- وګوره کره-

گرس:(گرس)اسم- واحد- مذکر- وګوره گرز- دولس درخنه-

گرست:(گرست)اسم- واحد- مذکر- په کوداله باندې زمکه نرمونه يا کوږ کونه-

گرست:(گرست)اسم صفت- مذکر- منتظم- کفايت شعار- سليقه مند- مست- مدهوش- (م- فارسی)-

گرستے:(گرس-تے)اسم- واحد- مذکر- هغه يوم چې زمکه پرې اړولے شی-

گرسره:(گر-سه-ره)متعلق فعل- بيخې له سره- قطعاً- بالکل-

گرسنه:(گر-سه-نه)اسم صفت- وږے- نهر- (م- فارسی)-

گرفت:(گ-رفت)اسم- واحد- مذکر- گرفتن مصدر نه ماضی مطلق- (۱)نيولے شوے- (۲)نيونه- (۳)قبضه- (۴)اعتراض- اختيار- وس-

گرفتار:(گ-رف-تار)اسم صفت- واحد- مذکر- قېدی- کېر شوے- قابو شوے- بندی- انښتے- ښکېل- نيولے شوے-

گرفتارول:(گ-رف-تا-ره-ول)مصدر متعدی- نيول- قېدول- کېرول- د جرم يا دعوې کولو نه پس نيول- (۲)نښلول- ښکېل کول- بندی کول-

گرفتارون:(گ-رف-تا-ره-ون)حاصل مصدر- وګوره گرفتارول-

گرفتارونکے:(گ-رف-تا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع گرفتارونکی- مؤنث گرفتارونکې- وګوره گرفتارول-

گرفتارونګ:(گ-رف-تا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګوره گرفتارول-

گرفتارونه:(گ-رف-تا-ره-وه-نه)حاصل مصدر- وګوره گرفتارول-

گرفتاری:(گ-رف-تا-ری)اسم- واحد- مؤنث- نيونه- کېرېدنه- نښتنه- په حراست کښې راتلنه- قېدېدنه- جمع گرفتاری-

گرفتارېدل:(گ-رف-تا-رې-دل)مصدر لازم- نيولے کېدل- د جرم يا دعوې نه پس نيولے کېدل- (۲)نښلېدل- ښکېلېدل- ښکېل کېدل- کېرېدل- (۳)بندی کېدل- قېدېدل- (۴)عاشق کېدل-

گرفتارېدن:(گ-رف-تا-رې-دن)حاصل مصدر- وګوره گرفتارېدل-

گرفتارېدنګ:(گ-رف-تا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګوره گرفتارېدل-

گرفتارېدنه:(گ-رف-تا-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګوره گرفتارېدل-

گرفتارېدونکے:(گ-رف-تا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع گرفتارېدونکی- مؤنث گرفتارېدونکې- وګوره گرفتارېدل-

گرفتارېده:(گ-رف-تا-رې-ده)حاصل مصدر- وګوره گرفتارېدل-

گرکنه:(گر-که-نه)اسم- واحد- مؤنث- يوه بې ازاره مچې- چې د خان د پاره د خاورو کور جوړوی- کولاله مچې- جمع گرکنې-

گرکول:(گر-کول)ترکيبی مصدر- حصارول- ايسارول-

گرکے:(گر-کے)اسم صوت- مذکر- د مېچنې د گرځولو اواز-

گرګ:(گرګ)اسم- واحد- مذکر- خارښ- پم- کهه- خارښت-

گرګ:(گرګ)اسم- واحد- مذکر- يو بوټے چې په چمن کښې خورېږی- زير واړه واړه گلونه کوی- که چرې حيوان ئې وخوری نو د خېګر بيماری پرې لګی- (۲)هغه چينچې چې د حيوان په خېګر کښې د گرګ د خوړو له کبله پيدا کېږی-

گرګ:(گرګ)اسم- واحد- مذکر- يو خطرناک ځناور- لېوه- شرمښ-

گرکابی:(گر-کا-بی)اسم- جمع- مؤنث- يو قسم پېزار- موزې-

گرکاړے:(گر-کا-ړے)اسم- واحد- مذکر- هر هغه غنډے څيز چې رغړولے يا تاوولے شی- گېرکاړے- گردکاړے-

گرکاس:(گر-کاس)اسم- واحد- مذکر- کرکس- ټټر- خيګر- د زړه سر-

گرکاڼے:(گر-کا-ڼے)اسم- واحد- مذکر- چم- غنډارے- کپه-

گرکټ:(گر-کټ)اسم صفت- جمع- وګوره ګلکوټی-

گرکټ:(گر-کټ)اسم- (۱)د اوښ د پېښې هډوکے- (۲)رنګ بدلونکې د کر بوږی په شان يوه حشره-

گرکټه:(گر-که-ټه)اسم صفت- واحد- مؤنث- سپين سرې ښځه- بوډۍ ښځه-

گرکر:(گر-کر)اسم صفت- مذکر- کوږ کوږ- خم خم-

گرکرام:(گر-که-رام)صفت- واحد- مذکر- اډ کډ- زوږ پوږ- مات ګډ-

گرکره:(گر-ک-ره)اسم- واحد- مؤنث- د بېرې مومره توری دانې کونکې يو غرنبزه ونه او د هغې مېوه- کرنده-

گرکره:(گر-ک-ره)اسم- واحد- مؤنث- ټکېدلی مټر- راړه-

گرکزرے:(گر-گز-رے)اسم- واحد- مذکر- توقه- غورلے- پوبلے- کنډوسکے-

گرکس:(گر-کس)اسم- واحد- مذکر- وګوره گرکاس-

گرکل:(گر-کل)اسم- واحد- مذکر- خارښ- پم- خارښت- کهه-

گرکله:(گر-که-له)اسم- واحد- مؤنث- وګوره گردباد-

گرکو:(گر-کو)اسم- واحد- مذکر- د ښځو د کپا يو قسم-

گرکوسه:(گر-کو-سه)اسم- واحد- مذکر مؤنث- کورکښ- هغه ځناور چې مړی راوباسی-

گرکه:(گر-که)اسم- واحد- مؤنث- کوسه- د ونې بېخ- د ونې هغه برخه چې په زمکه کښې دننه وی- (۲)غټ بش- تير- شهتير- (۳- صفت- مذکر)غټ کټ سړے- درونډ مضبوط سړے- جمع گرکې-

گرکی:(گر-کی)اسم صفت- واحد- مذکر- پمن- خارښتی- د پم په مرض يا خارښت اخته-

گرکين:(گر-کين)اسم صفت- مذکر- هغه څاروے يا سړے چې د خارښ بيماری ئې وی- خارښ زده-

گرکې:(گر-کې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)خاکی رنګ لرونکے يو قسم

بې پاڼو بوټے چې نرم نرم ښاخونه لري- (۲)دَ لړګی وړه سټه-

کړلاټ:(کړ-لاټ)اسم- واحد- مذکر- خاورین لوښے- ټیکرے- کودے-

کړلاځه:(کړ-لا-ځه)اسم- واحد- مؤنث- دَ مزری کورے- ترنګړ- غوندے- کړلسه- کړلځه-

کړلبے:(کړل-بے)اسم- واحد- مذکر- بلغم- خراشکے-

کړلټ:(کړ-لټ)اسم- واحد- مذکر- خربلے سر- کټووخه-

کړلځه:(کړ-له-ځه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کړلاځه-

کړلسه:(کړ-له-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ کړلاځه-

کړلنړ:(کړ-لنړ)اسم صفت- مذکر- ځرب- غټ- تیار- مؤنث کړلنړه-

کړلنړ:(کړ-لنړ)اسم- واحد- مذکر- دَ چوړلېدو پهٔ وجه سر ګرځېدنه-

کړلی:(کړ-لی)اسم- مؤنث- دَ پاڼ جلقه-

کړلی:(کړ-لی)اسم- واحد جمع- مؤنث- پېټي- پنړ- بنړل-

کړم:(کړم)اسم صفت- واحد- مذکر- ملامت- پړ- قصوروار-

ګرم:(ګه-رم)اسم صفت- مذکر- (۱)تود- حرارت لرونکے- (۲)تېز- چُست- چټک- (۳)عاشق- مئین- (۴)جذباتی- غُصه ناک- غُصه- قهرېدلے-

کړم:(کړم)اسم- واحد- مذکر- (۱)غم- رنځ- پسخاک- بخساک- نول- (۲)دماغی پرېشانی- (۳)یو مرض چې دَ غم لهٔ وجې پیدا کیږی- (۴)دَ ځنو ونو پهٔ تنه کښے غوټه- ګروم- ځنړ- رخټ-

ګرماګرم:(ګر-ما-ګه-رم)صفت مرکب- ډېر ګرم- چې زور و شور پکښې وی- تېز-

کړماله:(کړ-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- کلماله- ځېماله- دَ اخپر یا لبو کولو آله- پتانده-

کړمانه:(کړه-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کړمولو جُرمانه- تاغه- ملامتیا-

ګرمائی:(ګر-ما-ئی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګرم والے- تودوالے- (۲)غصه- غضب- (۳)تېزوالے- ګرمتوب- ګرمتیا-

ګرمتوب:(ګه-رم-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګرموالے-

ګرمتیا:(ګه-رم-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګرموالے-

کړمتیا:(کړم-تیا)اسم- واحد- مؤنث- ملامتیا- قصورواری-

کړمټ:(کړ-مټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نېزه- (۲)دَ غشی څوکه-

کرمټ:(کر-مټ)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې یو سر ئې دروند وی او فرش، سړک یا زمکه وغېره پرې دَ کښېکښلو پهٔ غرض ټکولے شی- دُرمټ-

ګرمجوشی:(ګه-رم-جو-شی)اسم مرکب- مؤنث- جوش- ولوله- سرګرمی- ډېره دلچسپی-

ګرم سېر:(ګه-رم-سېر)اسم- واحد- مذکر- توده سیمه- توده خاوره- ګرمه علاقه- هغه علاقه چې توده وی-.ګرم سېل-

ګرم سېل:(ګه-رم-سېل)اسم- واحد- مذکر- ګرمه علاقه- توده علاقه-

ګرمکه:(ګر-مه-که)اسم- واحد- مؤنث- هغه نری دانه چې دَ ګرمی پهٔ وجه پهٔ بدن راخیژی- جمع ګرمکې-

ګرمکې:(ګر-مه-کې)اسم- جمع- مؤنث- دَ ګرمکه جمع- وګورئ ګرمکه-

ګرمل:(ګر-مل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګربل-

ګرملے:(ګر-مه-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کوت- کنجلک- کړت- ملو- کنجی-

ګرم ناک:(ګه-رم-ناک)صفت- مذکر- تاؤژن- ګرمی ورکونکے- حرارت ورکونکے- ګرم وال-

ګرموال:(ګه-رم-وال)صفت- مذکر- وګورئ ګرم ناک-

ګرموالے:(ګه-رم-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- تودوالے- ګرمائش- تودوښه- تاؤ- ګرمی-

کړموز:(کړ-موز)صفت- مذکر- غصه ناک- قهرژن-

کړمول:(کړه-مه-ول)مصدر متعدی- ملامته کول- قصوروار ثابتول- پړکول-

ګرمول:(ګر-مه-ول)مصدر متعدی- (۱)تودول- حرارت ورکول- (۲)تېزول- شوق ورکول- (۳)غُصه کول- قهرول-

کړمون:(کړه-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کړمول ۱-

ګرمون:(ګر-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ګرمول ۲-

کړمونکے:(کړ-مه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړمول ۱-

ګرمونکے:(ګر-مه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ګرمونکی- مؤنث ګرمونکې- وګورئ ګرمول ۲-

کړمونګ:(کړ-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کړمول ۱-

ګرمونګ:(ګر-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ګرمول ۲-

کړمونه:(کړ-مه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ کړمول ۱-

ګرمونه:(ګر-مه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ګرمول ۲-

کړموهٔ:(کړ-مه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کړمول ۱-

ګرموهٔ:(ګر-مه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ګرمول ۲-

ګرمه:(ګر-مه)صفت- مؤنث- (۱)هغه ماده ځاروے چې دَ نر ځاروی طلب کوی- (۲)هغه مېوه چې ژر پخیږی- ژر رارسېدونکې یا پخېدونکې مېوه-

ګرمه:(ګر-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خربوزې یو قسم-

ګرمه کورمه:(ګر-مه-کور-مه)اسم صفت- مؤنث- کنه کوڼه-

ګرمی:(ګر-می)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تاؤ- تپ- تودوالے- تودوخی- دَ اوړی موسم- (۲)غصه- قهر- غضب- (۴)سوزاک- دَ تشو متیازو سوے- آتشک-

کړمېدل:(کړه-مې-دل)مصدر لازم- ملامته کېدل- قصوروار کېدل- پړکېدل-

ګرمېدل:(ګر-مې-دل)مصدر لازم- (۱)تودېدل- حرارت موندل- (۲)شوق موندل- تېزېدل- (۳)غصه کېدل- قهرېدل-

کړمېدن:(کړه-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کړمېدل ۱-

ګرمېدن:(ګر-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ګرمېدل ۲-

کړمېدنګ:(کړه-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کړمېدل ۱-

ګرمېدنګ:(ګر-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ګرمېدل ۲-

گرمېدنه:(گره-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ګرمېدل ۱-

گرمېدنه:(گَر-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ګرمېدل ۲-

گرمېدونکے:(گره-مې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ګرمېدل ۱-

گرمېدونکے:(گَر-مې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ګرمېدونکي- مؤنث ګرمېدونکې- وګورئ ګرمېدل ۲-

گرمېدهٔ:(گره-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ګرمېدل ۱-

گرمېدهٔ:(گَر-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ګرمېدل ۲-

گرمېل:(گر-مېل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګربل-

گرنابی:(گر-نا-بی)اسم- واحد/جمع- مؤنث دَ ماشومانو يوه لوبه چې پهٔ وړو وړو ټيکرو کولے شي-

گرنټه:(گه-رن-ټه)اسم- واحد- مؤنث- هغه بوټے چې دَ حسن او باړ پهٔ توګه دَ چمن او داسې نورو ځايونو نه ګېر چاپېره کرلے شي- نباتاتی نوم تېمرکس ډيوکا (TAMARIX DIOCA)-

گرنج:(گرنج)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ پخو وريژو يو قسم- برنج- يو قسم پلاؤ- (۲- اسم صوت)دَ پېټلو دَ لوښو اواز-

گرنجار:(گرن-جار)اسم- واحد- مذکر- هغه زمکه چې چرته دَ شولو پېداوار زيات وي- شولګره-

گرنجارے:(گرن-جا-رے)اسم صوت- واحد- مذکر- ګرنهار- ګرنګار- غلوغه-

گرنجانے:(گرن-جا-نے)اسم- واحد- مذکر- جرس-

گرنجهار:(گرن-جه-هار)اسم صوت- وګورئ ګرنجارے-

گرنجے:(گرن-جے)اسم صوت- ګرنجارے-

گرنخ:(گرنخ)اسم- واحد- مذکر- پهٔ هوا کښې دَ څهٔ څيز دَ تېرېدو آواز-

گرند:(گرند)اسم- واحد- مذکر- يو غرنيزه ازغنه ونه-

گرند:(گرند)اسم- واحد- مذکر- ژغل- جاله- زنګال-

گرند:(گرند)اسم- واحد- مذکر- دَ هندوانو يو مذهبی کتاب-

گرندوکے:(گرن-دو-کے)اسم- واحد- مذکر- دُ اسپو دَ خرخره کولو آله-

گرنده:(گرن-ده)اسم- واحد- مؤنث- مرغړې- مرورې- غدود- موره-

گرندے:(گرن-دے)اسم- واحد- مذکر- بخښنه- خلاصے- روغه- صلح-

گرندے:(گرن-دے)اسم- واحد- مذکر- توبره- دَ ترکاڼ دَ سامان بوجکې-

گرندے:(گهٔ-رن-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- ګړندے- تُند- تېز تلونکے- چُست- جمع ګرندی-

گرنړه:(گه-رن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګرګره-

گرنړه:(گرن-ړه)اسم- واحد- مؤنث- يوه هندوستانی مېوه چې اچار ترې جوړولے شي-

گرو:(گَ-رو)اسم صفت- واحد- مذکر- پوې- پوه- پوهه- استاد- تجربه کار- پير- ماهر- هوښيار- چالاک- ترکيبی- دَ علم نابغه استاذ-

گرو:(گ-رو)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګانه- کفالت- قيد- (۲)تړ- تړون- ناغه- عهد و پيمان- قول- لوظ-

گروبله:(گروب-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ بلغم-

گروبلے:(گروب-لے)اسم- واحد- مذکر- بلغم- خراشکے- ګرولے- ګروبله-

گروبے:(گرو-بے)مذکر- وګورئ ګروړبے-

گروپ:(گروپ)اسم- واحد- مذکر- ټولے- ټولکے- مجلس- غُنډه- پله- (م- انګريزی)-

گروپے:(گرو-پے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بګړی-

گروخکے:(گروخ-کے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم دانې چې مربه ترې جوړولے شي-

گروړبے:(گروړ-بے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سينې درد- دَ سينې دړد- (۲)بلغم- ګرولبے- ګروبے- خراشکے-

گروز:(گروز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګرز-

گروښيل:(گرو-ښې-يل)مصدر متعدی- وګورئ بکاروَل-

گرول:(گهٔ-ره-وَل)مصدر متعدی- (۱)نوکارې کول- پهٔ نوکونو راتوږل- (۲)پوستکے لرې کول- توږل- (۲)حاصلول-

گرولبے:(گرول-بے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګروړبے-

گرولے:(گرو-لے)اسم- واحد- مذکر- بلغم- خراشکے- ګروړبے- ګرولبے-

گروم:(گروم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګرم-

گرومجن:(گروم-جن)اسم صفت- مذکر- غمګين- پرېشان- ګرومژن-

گرومژن:(گروم-ژن)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ ګرومجن-

گرون:(گه-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ ګرول-

گرونکے:(گه-ره-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ګرونکي- مؤنث ګرونکې- وګورئ ګرول-

گرونګ:(گه-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ګرول-

گرونه:(گه-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ګرول-

گروهٔ:(گه-ره-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ګرول-

گروه:(گرهٔ-وه)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ اوږې او څټ تر منځه ځائ (هډوکے)- (۲)دَ قميص کالر- ګريوے-

گروه:(گر-وه)اسم- واحد- مؤنث- تنی- بټن- غينډے- ګل مخی-

گروه:(گروه)اسم- واحد- مذکر- (۱)دين- مذهب- (۲)قوم- (۳)ټولے- پله- جمع ګروهونه-

گروهن:(گرو-هن)صفت- مذکر- (۱)مائل- راغب- (۲)مهربان- (۳)دَ ظلم نه ترهه لرونکے-

گروهنه:(گرو-ههٔ-نه)اسم- مؤنث- (۱)مينه- محبت- (۲)ترهېدنه- وېرېدنه- (۳)الورنه- پېرزو- پېرزوينه-

گروهنے:(گرو-هه-نے)اسم صفت- مذکر- مهربان- مينه کونکے- پېرزو لرونکے-

گروهوځے:(گرو-هو-ځے)اسم- واحد- مذکر- ګراځه- لنده-

گروهول:(گرو-هه-وَل)مصدر متعدی- متوجه کول- راګرځول- مائله کول-

پام راګرځول- (۲)لهٔ ظلم نه ویرول- ترهول- (۳)عقیدتمند جوړول-
کرومولے:(ګرو-مه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرومول-
کرومون:(ګرو-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ کرومول-
کرومونکے:(ګرو-مه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کرومول-
کرومونګ:(ګرو-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ کرومول-
کرومونه:(ګرو-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرومول-
کروموهٔ:(ګرو-مه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کرومول-
کرومېدل:(ګرو-مې-دل)مصدر لازم- (۱)مائله کېدل- متوجه کېدل- پام راګرځول- (۲)ویرېدل- ترهېدل- (۳)عقیدتمند جوړېدل- معتقد کېدل-
کرومېدلے:(ګرو-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرومېدل-
کرومېدن:(ګرو-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کرومېدل-
کرومېدنګ:(ګرو-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کرومېدل-
کرومېدنه:(ګرو-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرومېدل-
کرومېدونکے:(ګرو-مې-دون-کے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرومېدل-
کرومېدهٔ:(ګرو-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کرومېدل-
کروي:(ګر-وي)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ کروه ۲-
کروېژل:(ګر-وې-ژل)مصدر متعدی- پښتنه کول- لټون کول- څېړنه کول- (افغانستان)-
کروېژلے:(ګر-وې-ژهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کروېژل-
کروېژن:(ګر-وې-ژن)حاصل مصدر- وګورئ کروېژل-
کروېژنه:(ګر-وې-ژهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کروېژل-
کروېژونکے:(ګر-وې-ژون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کروېژل-
کروېژهٔ:(ګر-وې-ژهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کروېژل-
کروېړل:(ګر-وې-ړل)مصدر متعدی- وګورئ کروېژل-
کروے:(ګر-وے)اسم- واحد- مذکر- زبېرګے- فریاد- زګېروے-
کره:(که-ره)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ خاورو کښې د محفوظ کړے شویو کنو ټوپ یا ډېرے-
کرهار:(کره-هار)اسم صوت- واحد- مذکر- کر- د جامو شلېدلو اواز- کرار-
کرهچ:(کر-هچ)اسم- واحد- مذکر- پوغل- کنده- کرهوځ-
کرهوځ:(کر-هوځ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کرهچ-
کریان:(کر-یان)صفت- واحد- مذکر- ژړغونے- فریادی- ژړېدونکے-
کریانی:(کر-یا-نی)اسم- واحد- مؤنث- ژړا- فریاد- کریه-
کریب:(ګریب)اسم- واحد- مذکر- د اوښ قب-
کریټ:(ګریټ)اسم- واحد- مؤنث- لویه او پېړه ړوړی چې ګړه هم پکښې اچولے شوې وی-
کریس:(ګریس)اسم- جمع- مذکر- (۱)وازګه- چربی- وازده- غوړوالے- (۲)یو قسم ځلېښناکه ماده چې د موټرو لاریو پهٔ پایو کښې د غوړوالی قائم ساتلو د پاره استعمالیږی-

کرینډی:(ګرین-ډی)اسم- واحد/جمع- مؤنث کجاوه-
کریه:(کر-یه)اسم- واحد- مؤنث- ژړا- انګولا- ویر- چغې- فریاد-
کرېبان:(ګرې-بان)اسم- واحد- مذکر- کرېوان- د قمیص غاړه-
کرېته:(ګرې-ته)اسم- واحد- مؤنث- د مړی حلوا چې جنازې نه سمدستی پس پخولے شی- لېټی-
کرېټی:(ګرې-ټی)اسم- جمع- مؤنث- د کیلو مانو خبرې- کیلې ماندرې- کیلې مانې-
کرېدل:(که-رې-دل)مصدر لازم- (۱)کهه کول- خارښتېدل- (۲)رژېدل- ګنجې کېدل- کرښې کرښې کېدل- (۳)زخمی کېدل- خورګ وجود نه لرې کېدل- (۴)پوستکے لرې کېدل- (۵)څهٔ څیز بودېدل- حاصلېدل-
کرېدلے:(که-رې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کرېدل-
کرېدن:(که-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ کرېدل-
کرېدنګ:(که-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ کرېدل-
کرېدنه:(که-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ کرېدل-
کرېدونکے:(که-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کرېدونکې- مؤنث کرېدونکې- وګورئ کرېدل-
کرېدهٔ:(کهٔ-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ کرېدل-
کرېز:(ګ-رېز)اسم- واحد- مذکر- (۱)تېښته- فرار- (۲)بېلېدنه- پرهېز- اجتناب- (۳)پهٔ قصیده کښې لهٔ تمهیده پس اصل مقصد ته راګرځېدنه- کرېغ- (م- فارسی)-
کرېزان:(ګ-رې-زان)اسم فاعل/صفت- (۱)تښتېدونکے- (۲)وېرېدلے- ترهېدلے- کرېزپا- (م- فارسی)-
کرېزائے:(ګرې-زا-ئے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اروے- اررمے- اړرمے-
کرېزپا:(ګ-رېز-پا)اسم صفت- وګورئ ګرېزان- (م- فارسی)-
کرېزی:(ګ-رې-زی)اسم- واحد- مذکر- (۱)فرار- تېښته- (۲)سمګلنګ-
کرېس:(ګرېس)اسم- واحد- مذکر- مکر- فرېب- چل- بانه- بهانه- حیله-
کرېشک:(ګرې-شک)اسم- واحد- مذکر- کټه ګټه- د لاس وړومبی ګټه-
کرېغ:(ګ-رېغ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګرېز-
کرېکرکے:(ګرې-ګر-کے)اسم- واحد- مذکر- ړلی-ړرېکرکے- د باران سره د ږاورې راورېدنه- کرېکرکے- ګړه کرے-
کرېکرے:(ګرې-کهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کرېکرکے-
کرېله:(که-رې-له)اسم- واحد- مؤنث- توشک- تولانی- جمع کرېلې-
کرېن:(ګرېن)اسم- واحد- مذکر- (۱)تخم- (۲)غله- (۳)دانه- (۴)د یوې نیمې رتی یو وزن-
کرېو:(ګرېو)اسم- واحد- مذکر- ګاڼه- رهن- کروه-
کرېوان:(ګرې-وان)اسم- واحد- مذکر- د قمیص هغه برخه چې پهٔ سینه پرته وی او تنی پکښې لګولے شوې وی- کرېبان- کرېوه- ګېړ-
کریولی:(ګریو-لی)اسم- واحد- مؤنث- بلغم- خراشکے- خراچکے-

ګرېوه:(ګرې-وه)اسم- واحد- مؤنث- ګرېوان- ګروه-

ګرېوه:(ګرې-وه)اسم- واحد- مؤنث- د تنې سورے-

ګرېوه:(ګرې-وه)اسم- واحد- مؤنث- وړوکے غر- غرګے- غُنډې-

ګرېوے:(ګرې-وے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګروه-

ګرېیل:(ګهٔ-رې-یل)مصدر متعدی- خارښتېدل- ګرېدل-

ګرې:(ګر-رې)اسم- جمع- مؤنث- د وریژو دانې چې په بوټي کښې نیمې پخ شوې وي-

ګرے:(ګرے)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې غابښونه ئې کاږهٔ واږهٔ او بې ترتیبه وي-

ګرے:(ګهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے درمن یا درمند- درمندګے-

ګړ:(ګړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)قلعه- قلا- حصار- (۲)د لاحقې په توګه د ظرفیت معنیٰ ورکوي- د وسېدو ځائ، لکه امان ګړ، علی ګړ، خوشحال ګړ وغېره-

ګړ:(ګړ)اسم- واحد- مذکر- لفظ- خبره- وینا-

ګړاکو:(ګ-ړا-کو)اسم- واحد- مذکر- (۱)د تماکو او زړې ګړې مرکب چې چیلم کښې څښلے شي- (۲)د هغه چیلم نامه چې زړه ګړه او تماکو پکښې څښلے شي-

ګړب:(ګړب)اسم- واحد- مذکر- (۱)تېزې او تُندې خبرې- (۲)د دوو څیزونو په خپلو کښې د جنګېدو اواز- د ور یا په څهٔ څیز د سر بندولو اواز- (۲)د منږکانو نیولو پنجره- (۴)غټه سوړه- چودے ځائ-

ګړبا:(ګړه-با)اسمِ صوت- (۱)خبرې- کړه بړه- (۲)د دروازې وغېره اواز-

ګړباده:(ګړ-با-ده)اسم- واحد- مؤنث- بړبوکی- د پیریانو ړولي-

ګړبار:(ګړه-بار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړبهار-

ګړباوو:(ګړه-با-وو)اسم صفت- واحد- مذکر- ګړتن- ډېرې خبرې کونکے-

ګړباوه:(ګړه-با-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د اُبو د خارجېدو ځائ- (۲)کانیزه زمکه-

ګړبر:(ګړ-بر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړبړ-

ګړبرے:(ګړ-بهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړبړ-

ګړبړ:(ګړ-بړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ګېډې د قړېدو اواز- قړقړ- (۲)بدنظمي- خلل- بدانتظامي- ګډوډے- ورانے- (۲)ګړبار- ګړبېدنه- (۴)په اراده یا بیان کښې فرق راتلنه- (۵)وارخطائی- جنجال- ګړبړے- ګړبر- ګړبرے-

ګړبړے:(ګړ-بهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړبړ-

ګړب ګړوب:(ګړب-ګړوب)اسمِ صوت- (۱)خبرې اترې- (۲)د دروازې وغېره د بندېدو او خلاصېدو پرله پسې اواز-

ګړبن:(ګړه-بن)اسم صفت- مذکر- ګړبند- فضول خبرې کونکے- ونېندوکے- سرماغزن- ګړبو- مؤنث ګړبنه-

ګړبند:(ګړه-بند)اسم صفت- واحد- مذکر- ګړبن- قړتو- ترتو- خبرلوځ-

ګړبند:(ګړه-بند)اسم صفت- (۱)زوړ- کمزورے- ضعیف- بوډا- (۲)ډېر استعمال شوے- مؤنث ګړبنده-

ګړبنده:(ګړه-بن-ده)اسم- واحد- مؤنث- په غر کښې لوئ قدرتی غار- ځمځ-

ګړبوزه:(ګړ-بو-زه)اسم- رپېدنه- ړچ- ګړګوزه- رپ رپے- ککړوزه- جمع ګړبوزې-

ګړبوزے:(ګړ-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- (۱)غزے- (۲)بالښت- تکیه- ګړوزے-

ګړبول:(ګړه-به-ول)مصدر متعدی- (۱)لهٔ څهٔ څیزه د ګړب ګړب اواز وېستل- (۲)زړول- ډېر استعمالول- (۲)لهٔ چا ډېرې فضول خبرې وېستل- (۴)غصه کول-

ګړبولے:(ګړه-به-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ګړبول-

ګړبون:(ګړه-به-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړبول-

ګړبونکے:(ګړه-به-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ګړبول-

ګړبونګ:(ګړه-به-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړبول-

ګړبونه:(ګړه-به-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړبول-

ګړبهار:(ګړه-به-هار)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر- د دوؤ څیزونو د جنګولو اواز- د ګړب ګړب اواز- ګړبار-

ګړبېدل:(ګړه-بې-دل)مصدرِ لازم- (۱)لهٔ څهٔ څیزه د ګړب ګړوب اواز ختل- (۲)زړېدل- ډېر زیات استعمالېدل- (۲)ډېرې فضول خبرې کول- (۴)غُصه کېدل- (۵)کمزورے کېدل- ډېر مانده کېدل-

ګړبېدلے:(ګړه-بې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ګړبېدل-

ګړبېدن:(ګړه-بې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړبېدل-

ګړبېدنه:(ګړه-بې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړبېدل-

ګړبېدونکے:(ګړه-بې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ګړبېدل-

ګړبېزن:(ګړ-بې-زن)اسمِ صفت- مذکر- ګړبېزن- هغه سړے چې پوزه ئې مُدام د ګند نه ډکه وي- خیرن- خچن- پوار سړے- مؤنث ګړبېزنه-

ګرج:(ګرج)اسم- واحد- مذکر- تېزې او تُندې خبرې- د دوؤ کسانو تر مینځه د غُصې او شور خبرې-

ګړځ:(ګړځ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړز-

ګړخا:(ګړه-خا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګړزا-

ګړخار:(ګړه-خار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړزا-

ګړځ ګړوځ:(ګړځ-ګړوځ)اسمِ مرکب- مذکر- (۱)ګړز ګړوز- ګړګوړ- غرغور- په باران کښې د اسمانی بجلی اواز- د تندر اواز- ګړزهار- (۲)ډزې-

ګړخول:(ګړه-خه-ول)مصدرِ متعدی- وګورئ ګړزول-

ګړچ:(ګړچ)اسمِ صوت- د څهٔ څیز د جنګېدو اواز-

ګړچاوړ:(ګړهٔ-چا-وړ)اسم صفت- مذکر- (۱)تېزې او تُندې خبرې کونکے- هر چا سره د غُصې خبرې کونکے- (۲)هغه سړے چې زوم د سخر کره بوځي او هلته ئې تعارف کوي-

ئ" (ښی-ړل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پیا-لې)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کړچند:(کړهٔ-چند)اسم- هغه څيز چې کړچ کړچ کوی-

کړچول:(کړهٔ-چه-ول)مصدرِ متعدی- دَ خوځولو په وجه اواز پېدا کول- (عموماً دَ دروازې)-

کړچولے:(کړهٔ-چه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع کړچولی- مؤنث کړچولې- وګورئ کړچول-

کړچون:(کړهٔ-چه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ کړچول-

کړچونکے:(کړهٔ-چه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړچونکی- مؤنث کړچونکې- وګورئ کړچول-

کړچونګ:(کړهٔ-چه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړچول-

کړچونه:(کړهٔ-چه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړچول-

کړچوهٔ:(کړهٔ-چه-وهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړچول-

کړچه:(کړهٔ-چه)اسم- واحد- مؤنث- زبانی جنجال- زبانی بحث و تکرار-

کړچهار:(کړهٔ-چه-هار)اسمِ صوت- دَ کړچ کړچ مسلسل اواز-

کړچېدل:(کړهٔ-چې-دل)مصدرِ لازم- دَ خوځېدو پهٔ وجه اواز پېدا کېدل (عموماً دَ دروازې)-

کړچېدلے:(کړهٔ-چې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع کړچېدلی- مؤنث کړچېدلې- وګورئ کړچېدل-

کړچېدن:(کړهٔ-چې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړچېدل-

کړچېدنګ:(کړهٔ-چې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړچېدل-

کړچېدنه:(کړهٔ-چې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړچېدل-

کړچېدونکے:(کړهٔ-چې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع کړچېدونکی- مؤنث کړچېدونکې- وګورئ کړچېدل-

کړچے:(کړهٔ-چے)اسمِ صوت- وګورئ کړچهار-

کړد:(کړد)اسم- واحد- مذکر- دوړه- ګرد- غبار- هوا سره الوتونکې خاورې خځلې- ګرد-

کړد:(کړد)صفت- مذکر- وګورئ کرد-

کړداکړ:(کړ-دا-کړ)صفت- وګورئ کړداکر-

کړداکړد:(کړ-دا-کړد)صفت- مذکر- وګورئ کړداګرد-

کړدان:(کړ-دان)اسم- واحد- مذکر- دَ غرهٔ لمن-

کړدان:(کړ-دان)اسم- واحد- مذکر- دَ بټیارانو لوښکے-

کړدان:(کړ-دان)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګردان- سردوباره زوتول- (۲)ګرځېدونکے- ګرځندے- چورلېدونکے- (۳)پهٔ مرکباتو کښې اکثر دَ فعلِ متعدی پهٔ معنو کښې استعمالیږی لکه سرګردان- جمع کړدانونه-

کړدانول:(کړ-دا-نه-ول)مصدرِ متعدی- ګردانول- سردوباره کول- زوتول- يادول- زوړ سبق بيا دَ سره اړول-

کړدانون:(کړ-دا-نه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ کړدانول-

کړدانونکے:(کړ-دا-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع کړدانونکی- مؤنث کړدانونکې- وګورئ کړدانول-

کړدانونګ:(کړ-دا-نه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړدانول-

کړدانونه:(کړ-دا-نه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړدانول-

کړداؤ:(کړ-داؤ)اسم- واحد- مذکر- چله- سېلاب- څپه- هغه سېلاب چې چار چاپېره مخې وهی- (۲)غولې- ګرداب- چورلندے- چورلن-

کړدسره:(کړد-سه-ره)متعلق فعل- بالکل- بېخی- لهٔ څېلمې- لهٔ سره- چُور- چورلټ-

کړدکاړے:(کړد-کا-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګردکاړے- جمع کړدکاړی-

کړدن:(کړ-دن)اسم- واحد- مؤنث- ګردن- څټ- غاړه- (۲)ذمه-

کړدنی:(کړ-ده-نی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ کردنی-

کړدوکے:(کړ-دو-کے)اسم- واحد- مذکر- ګرده تخته چې پهٔ خېمه کښې پکارولے شی- دَ خېمې اړم-

کړده:(کړ-ده)صفت- مؤنث- دَ کړد مؤنث- وګورئ کرد-

کړده:(کړ-ده)اسم- واحد- مؤنث- کرد- کړد- کرده-

کړدی:(کړ-دی)اسم صفت- واحد- مؤنث- غنډه- دَ دائرې پهٔ شکل تاؤ شوې- کېرچاپېره- تاؤ راتاؤ- حلقه-

کړدی:(کړ-دی)اسم- واحد- مؤنث- دَ څرخې چکر-

کړدے:(کړ-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټکے- چرمکے- څرخلکے- (۲- صفت)مندرے- چيتکے- وړوکے قد لرونکے سړے-

کړز:(کړز)اسم صوت- واحد- مذکر- تېز او دروند اواز- دَ بارودو يا دَ تندر وغېره اواز- ړز-

کړزا:(کړه-زا)اسمِ صوت- واحد- مؤنث- دَ ړزو مسلسل اواز- کړزار- کړزارے- کړز کړوز-

کړز کړوز:(کړز-کړوز)اسم مرکب- مذکر- وګورئ کړخ کړوخ-

کړزول:(کړه-زه-ول)مصدرِ متعدی- (۱)لهٔ څهٔ څيزه دَ کړز کړز اواز وېستل- (۲)ړزول- ړزې کول- (۳)دشمنی جاری ساتل-

کړزون:(کړه-زه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ کړزول-

کړزونکے:(کړه-زه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړزول-

کړزونګ:(کړه-زه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړزول-

کړزونه:(کړه-زه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړزول-

کړزهار:(کړز-هار)اسم صوت- جمع- مذکر- وګورئ کړزا-

کړزېدل:(کړه-زې-دل)مصدرِ لازم- کړز کړوز کېدل- کړبېدل- پهٔ يو مخ دَ ړزو آوازونه کېدل- کړزارے کېدل- (۲)ړزېدل- ړزې کول- (۳)دشمنی جاری ساتل-

کړزېدن:(کړه-زې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړزېدل-

کړزېدنګ:(کړه-زې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړزېدل-

کړزېدنه:(کړه-زې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړزېدل-

ګړزېدونکے:(ګړه-زې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ګړزېدل-

ګړزېدهٔ:(ګړه-زې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ګړزېدل-

ګړشپه:(ګړ-شَ-په)اسمِ صفت- واحد- مؤنث- ګړشپه- کپه خُله چې غاښونه پکښې نهٔ وی-

ګړکاېړ:(ګړ-کا-ېړ)صفت- ګړکاېړه- کېړه- هغه څهٔ چې دَ بل شی ګډه پکښې شوې وی- کاېړه- ښه او بد- شریف او کم اصل- اصیل او رذیل-

ګړکړ:(ګړ-کړ)اسمِ مرکب- دَ کېډې اواز- ټرټر- دَ اوښ اواز-

ګړګړو:(ګُړ-ګَ-ړو)اسم- واحد- مذکر- توړتوړو- ستونے- حلقوم- غرے- غروے- دَ مرۍ سوړے- حلق-

ګړکړے:(ګړ-کهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- چورلندے- څرخ-

ګړکوتی:(ګړ-کو-تي)اسم- جمع- مذکر- کالکوتی- کورکوتی- کلکوتی- هغه وېښتهٔ چې تاؤ راتاؤ وی-

ګړ کوړ:(ګړ-ګوړ)اسمِ صوت- مذکر- دَ اَسمان ګړارے- ګړار- تندر- دَ برېښ او ګړاری اَوازونه- تنا-

ګړکوزه:(ګړ-کو-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګړبوزه-

ګړکے:(ګړ-کے)اسم- دائره-

ګړلیکے:(ګړ-لي-کے)اسم- واحد- مذکر- ډکشنری- لغت نامه- قاموس- فرهنګ- (افغانستان)-

ګړماچے:(ګړ-ما-چے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړونج-

ګړماګړ:(ګړ-ما-ګړ)اسم- مرکب- مذکر- ډېر شور- شور زوږ- چغې سورې-

ګړماله:(ګړ-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګرماله-

ګړمانج:(ګړ-مانج)اسم- ماخو- ګړوانجو- دَ څېړی دَ ونې ستغ چې پهٔ دارو کانو کښې پکارولے شی-

ګړمچے:(ګړ-مه-چے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړونج-

ګړمن:(ګړ-من)صفت- واحد- مذکر- شوکیره کونکے- بې خوبه- شوکیر- ګړن-

ګړن:(ګهٔ-ړن)صفت- واحد- مذکر- (۱)ګړمن- شوګیر- (۲)ستړے-

ګړنج:(ګړنج)اسم- مذکر- شرنګ- شړنګ- دَ تورو جنګېدو اواز- دَ لوښو خپلو کښې دَ جنګېدو نرے اواز-

ګړنج:(ګړنج)اسم- واحد- مذکر- ګفت- سوڼ- پهٔ ورو آواز- بې معنې تلفظ-

ګړنجول:(ګړن-جه-وَل)مصدرِ متعدی- لهٔ تورو نه شرنګار وېستل- شرنګول- دَ شیشې دَ لوښو نه دَ شړنګ آواز وېستل- لهٔ څهٔ څیزه غلے شرنګ یا ټنګ وېستل- پهٔ ورو ټنګول یا شرنګول- نرے آواز وېستل-

ګړنجولے:(ګړن-جه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ګړنجول-

ګړنجون:(ګړن-جه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړنجول-

ګړنجونکے:(ګړن-جه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ګړنجول-

ګړنجونګ:(ګړن-جه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړنجول-

ګړنجونه(ګړن-جه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړنجول-

ګړنجوونے:(ګړن-جه-وؤ-نے)اسم- واحد- مذکر- جرس-

ګړنجهار:(ګړن-جه-هار)اسمِ صوت- دَ جرس دَ ټنګېدو مسلسل اواز-

ګړنجېدل:(ګړن-جې-دَل)مصدرِ لازم- دَ تورو جنګېدو پهٔ وجه نرے شرنګ وتل- دَ څهٔ څیز نه نرے آواز پیدا کېدل- شرنګېدل- ګړنګېدل-

ګړنجېدلے:(ګړن-جې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ګړنجېدل-

ګړنجېدن:(ګړن-جې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړنجېدل-

ګړنجېدنګ:(ګړن-جې-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړنجېدل-

ګړنجېدنه:(ګړن-جې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړنجېدل-

ګړنجېدهٔ:(ګړن-جې-دهٔ)حاصلِ مصدر- وګورئ ګړنجېدل-

ګړنجے:(ګړن-جے)اسمِ صوت- وګورئ ګړنجهار-

ګرند:(ګهٔ-ړند)اسمِ صفت- ېړې خبرې کونکے- سخت زړے- خله ور- ژبه ور- مؤنث ګړندی-

ګړندر:(ګړن-در)اسم- واحد- مذکر- شمېر- عدد- کرندر-

ګرندوالی:(ګه-ړند-وا-لي)اسم- واحد- مؤنث- ژبه ورتوب- پهٔ خبرو کښې تېزوالے- خله ورتوب- زبان درازی- ګړندوالے-

ګړندوالے:(ګه-ړند-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړندوالی-

ګرندی توب:(ګه-ړن-دی-توب)اسم- واحد- مذکر- تېزرفتاری- چالاکی- تُندی- تېزی- چُستی- جلتی- تېز تګ-

ګړندی:(ګه-ړن-دی)اسمِ صفت- مؤنث- دَ ګړندے مؤنث- وګورئ ګړندے-

ګرندی:(ګړن-دی)اسم- واحد- مؤنث- چرمښکی- هغه کربوړے چې پهٔ کورونو کښې ژوند کوی- ګرندے-

ګړندے:(ګه-ړن-دے)صفت- (۱)تېز تلونکے- تېز رفتار- (۲)چُست و چالاک- تکړه- چابک- مؤنث ګړندی-

ګړندے:(ګړن-دے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګړندی-

ګړنګ:(ګه-ړنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لُویه کنده- (۲)دَ دریاب پهٔ غاړه لوئ کمر- (۲)ډېر لوړ دېوال- ګړنګه- جمع ګړنګونه-

ګړنګ:(ګړنګ)اسم- واحد- مذکر- دَ پوزې غلیظه ماده- دَ پوزې غلاظت- ګړینګ- خرمت- ګرمېزه- دَ پوزې اُبهٔ- دَ سترګو اُبهٔ-

ګړنګن:(ګړنګ-ګن)صفت- مذکر- هغه څوک چې پوزه ئې مُدام دَ ګند نه ډکه وی- هغه څوک چې هر وخت ئې پوزه بهیږی- خنا- ګرمېزن- ګړنګور- ګړنکوش- مونث ګړنکنه-

ګړنکنه:(ګړنګ-کهٔ-نه)صفت- مؤنث- وګورئ ګړنګن-

ګړنکور:(ګړنګ-که-ور)صفت- مذکر- وګورئ ګړنګن-

ګړنکوش:(ګړنګ-کوش)صفت- مذکر- وګورئ ګړنګن- مؤنث ګړنکوشه-

ګړنکه:(ګه-ړنګ-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ګړنګ-

ګړنکین:(ګه-ړنګ-ګین)صفت- مذکر- لوړدنګ- هسک- ډېر زیات هسک- مؤنث ګړنګینه-

ګړنګینه:(ګه-ړنګ-ګی-نه)اسم صفت- مؤنث- وګورئ ګړنګین-

ى (خې-رل)، ې (هې-ره-ول)، ى (پیا-لې)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کړو:(ک-ړو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کړاکو-

کړوانجو:(کړ-وان-جو)اسم- وګورئ کړمانج-

کړواز:(کړ-واز)صفت- ارت- ویړ- فراخ- آزاد- کشاده- مونث کړوازه-

کړوب:(کړوب)تابعِ مُهمل- دَ کړب تابع مُهمل- وګورئ کړب-

کړوب:(که-ړوب)اسم- واحد- مذکر- (۱)اُبهٔ- خټه- کړوبے- خاورینې اُبهٔ-

کړوبړ:(کهٔ-ړو-بړ)اسمِ مرکب- مذکر- خبرې اترې- کړه بړه- سره خبرې اترې کونه-

کړوبن:(که-ړو-بن)اسمِ صفت- مذکر- هغه څوک چې پهٔ سینه یٔ مُدام بلغم پروت وی- بلغمی- مؤنث کړوبنه-

کړوبے:(که-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کړوب ۲-

ړوبے:(که-ړو-بے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کړې شربت- (۲)ړبړ خوړ څیز-

کړوخه:(کړو-خه)اسم- واحد- مؤنث- بې پیَو غولانځه- هغه غولانځه چې پئ پکښې نهٔ وی-

کړول:(که-ړه-وَل)مصدرِ متعدی- پهٔ خبرو راوستل- دَ چا نه خبرې وېستل-

کړولے:(که-ړه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کړول-

کړون:(که-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړول-

کړونکے:(که-ړه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړول-

کړونګ:(که-ړه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړول-

کړونه:(که-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړول-

کړونج:(کړ-وُنج)اسم- واحد- مذکر- دَ لرګیو جوړ کړے شوے دَ منګیو دَ ایښودو ځایٔ- کړماچے- کړمچے-

کړونجی:(کړ-ون-جی)اسم- مؤنث- وړوکے کړونج-

کړونګه:(کړ-ونګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- ابشار- جړوبے-

کړومېدل:(کړو-مې-دل)مصدرِ لازم- وګورئ کرومېدل-

کړویونے:(که-رو-یو-نے)صفت- مذکر- ویونکے- ویونے- کړېدونکے- مؤنث کړویونې-

کړویږنه:(کړ-وې-ږهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کرویږل-

کړوی:(کړ-وی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ جیری-

کړه:(که-ړه)اسم- واحد- مؤنث- کنده- بړوله- څمڅ- ړوغل- جمع کړې-

کړه:(ګ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کنی لهٔ شربته جوړېدونکې خوږه ماده چې پهٔ چایو یا شربت وغېره کښې استعمالولے شی- ګوړه-

کړه بړه:(کهٔ-ړه-بهٔ-ړه)اسم مرکب- مؤنث- کړوبړ- کړبړ-

کړه کړے:(کهٔ-ړه-کهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کړبکړکے-

کړهار:(کړ-هار)اسم- جمع- مذکر- خبرې اترې- کړوبړ- کړبړ-

کړهل:(کړ-هل)اسم- واحد- مذکر- یو بوټے چې ګل نیسی- ګل عجائب-

کړهل:(کړ-هل)اسم- واحد- مذکر- ړول- مټل- مټکے- بالټے- باټے-

کړیال:(کړ-یال)اسم- واحد- مذکر- لویه کړی چې دېوال ته خوړندولے شی- کاړیال-

کړیالے:(کړ-یا-لے)صفت- واحد- مذکر- ساعت ښیونکے- ساعت ښیونے- هغه سړے چې دَ وخت ښودلو وظیفه لری-

کړیندے:(کړین-دے)اسم- واحد- مذکر- چیچړه غوښه- مانده غوښه- چنچړې- کینکړې- لیېړی-

کړیکے:(که-ړی-کے)اسمِ تصغیر- واحد- مذکر- دَ کړے اسمِ تصغیر- وړوکے منګے یا کړے- منګوټے-

کړی کش:(که-ړی-کش)اسم- واحد- مذکر- جېل کښې دَ کړی پهٔ ذریعه دَ کشت کولو نظام-

کړینګ:(کړینګ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ کړنګ-

کړینکے:(کړینګ-کے)اسم- واحد- مذکر- جرس- وړوکے ګونګرو-

کړیوال:(که-ړی-وال)اسم- واحد- مذکر- هغه سړے چې دَ کلیو بانړو نه ښارونو ته پئ راوړی- کوجر- ګُجر- مؤنث کړیواله- جمع کړیوالان-

کړې بړې:(کهٔ-ړې-بهٔ-ړې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ کړه بړه-

کړېچ:(که-ړیچ)اسم- واحد- مذکر- سخته لاره- داسې لاره چې تګ راتګ پرې ګران وی-

کړېچی:(که-ړې-چی)اسم- واحد- مؤنث- دَ بوټی دَ ښخولو دَ پاره پهٔ زمکه کښې وړه کنده- کوغالے-

کړېدل:(که-ړې-دل)مصدرِ لازم- (۱)خبرې کول- کړه بړه کول- (۲)کړړېدل- کړړېدل- کړخ کړوخ کول-

کړېدلے:(که-ړې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- وګورئ کړېدل-

کړېدن:(که-ړې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ کړېدل-

کړېدنه:(که-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ کړېدل-

کړېدنګ:(که-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ کړېدل-

کړېدونکے:(که-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ کړېدل-

کړی:(که-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ وخت ښودلو آله- ګنټه- (۲)ساعت- دَ وخت حصه-

کړی:(کهٔ-ړی)اسم- مؤنث- چشمه- چینه-

کړی:(که-ړی)اسم- واحد- مؤنث- حلقه- شپول- هاله- کړدی-

کړی:(کهٔ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ کاڼی کښې ژور جوغړے چې دَ باران اُبهٔ پکښې ودرېږی- (۲)پهٔ دریاب کښې ژور غار-

کړے:(کهٔ-ړے)لاحقه- دَ ځنو اسمونو پهٔ اخره کښې راتلو سره دَ فاعلیت معنٰی پیدا کوی- لکه مېنځکړے- ژرنده کړے وغېره-

کړے:(که-ړے)اسم- واحد- مذکر- منګے-

کړے:(که-ړے)اسم- واحد- مذکر- برج- شینکړی- اټاری- بورجل-

کز:(کز)اسم- واحد- مذکر- (۱)درې فټه- دَ ناپ یوه اندازه- (۲)هغه سیخ چې دَ ټوپک پهٔ شپېلی کښې ننښتې توقه (کوکه) پرې راوېستے شی- جمع کزونه-

کز:(کز)اسم- واحد- مذکر- یو ړول غشے چې دواړه سرونه یٔ تېره او مېنځ

ې پېر او بې لیندې ویشتل کیږي- (۲)دام- لومه-

گز:(گز)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ یوې ونې نوم- (۲)دَ لرگي اله چې دَ اوړو پېړه پرې هواروله شي-

گزابی:(گه-زا-بی)صفت- مؤنث- بې وقوفه- کم عقله- لوړه دنګه بې عقله ښځه-

گزار:(گ-زار)اسم- واحد- مذکر- گوزار- غوزار- ړپ- درب- غرب- (۲)وار- خل- کرت-

گزارش:(گ-زا-رش)اسم- واحد- مذکر- (۱)عرض- درخواست- (۲)بیان-

گزارل:(گ-زا-رل)مصدر متعدی- (۱)ادا کول- پوره کول- ترسره کول- (۲)غزارل- غُرزول- ارتاوؤل- گوزارول-

گزارلے:(گ-زا-رۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ گزارل-

گزارن:(گ-زا-رن)حاصل مصدر- وګورئ گزارل-

گزارنګ:(گ-زا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ گزارل-

گزارنه:(گ-زا-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گزارل-

گزارول:(گ-زا-ره-ول)مصدر متعدی- گزارول- غُرخول- پۀ درز راغُرخول- گوزارول- ارتاوؤل- لرې کول- لرې ویشتل- گزارل-

گزارون:(گ-زا-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ گزارول-

گزارونکے:(گ-زا-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ گزارل-

گزاروونکے:(گ-زا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ گزارول-

گزارونګ:(گ-زا-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ گزارول-

گزارونه:(گ-زا-ره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گزارول-

گزاره:(گ-زا-ره)اسم- واحد- مؤنث- گوزاره- (۱)گزران- وخت اړونه- ورځې شپې تېرونه- گزراوقات- ساعت تېرے- (۲)زغم- صبر-

گزاری:(گه-زا-ری)اسم- جمع- مذکر- وګورئ گخاری-

گزارېدل:(گ-زا-رې-دل)مصدر لازم- پربوتل- گوزارېدل- غُرخېدل- ارتاوېدل- اړتاوېدل- لرې کېدل-

گزارېدن:(گ-زا-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ گزارېدل-

گزارېدنګ:(گ-زا-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ گزارېدل-

گزارېدنه:(گ-زا-رې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گزارېدل-

گزارېدونکے:(گ-زا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ گزارېدل-

گزارېدۀ:(گ-زا-رې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ گزارېدل-

گزاف:(گه-زاف)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لاپې- فضول خبرې- بکواس- (۲)ډېر زيات-

گزانه:(گه-زا-نه)اسم- دَ گزونو پۀ حساب- گزکونه-

گزبره:(گز-به-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم ریښمینه کپړه- قناویز- جمع گزبرې-

گزټ:(گه-زټ)اسم- واحد- مذکر- اطلاع نامه- مغه اخبار یا خبر چې پکښې سرکاری اعلان وی- (م- انګریزی)-

گزر:(گ-زر)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لاره- (۲)گودر- (۳)عمل دخل- رسایی- لاس رسېدنه- (۴)گزران- تېرېدنه-

گزران:(گز-ران)اسم- واحد- مذکر- وخت اړونه- وخت تېرونه- یوځای وسېدنه- ساعت تېرے- گوزاره- زیست- وخت تېرے-

گزرانېدل:(گز-را-نې-دل)مصدر لازم- تېرېدل- چلېدل- اوړېدل-

گزرانېدن:(گز-را-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ گزرانېدل-

گزرانېدنګ:(گز-را-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ گزرانېدل-

گزرانېدنه:(گز-را-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گزرانېدل-

گزرانېدۀ:(گز-را-نې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ گزرانېدل-

گزک:(گه-زک)اسم- واحد- مذکر- پاړسوب- دَ زخم اُبۀ پېتونه- (۲)صفت- پړسېدلے- نوژن-

گزک:(گه-زک)اسم- واحد- مذکر- مغه څیز چې دَ افیمو یا شرابو څښلو نه پس دَ خُلې خوند بدلولو دَ پاره خوړے شی- (۲)یو قسم مټائی- خواږۀ-

گزکه:(گه-زه-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ وړو مرغیو نیولو دَ پاره دَ لرگی کوړکې- پړکه-

گزگومبت:(گز-گوم-بت)صفت- وګورئ گزگومبد-

گزگومبد:(گز-گوم-بد)صفت- کپړې- وران- ختم- گزگومبت-

گزلک:(گز-لک)اسم- واحد- مذکر- چاړۀ- چړۀ- کړلک-

گزلکه:(گز-له-که)اسم- واحد- مؤنث- چاړۀ- چړوکی- کړلکه-

گزن:(گ-زن)اسم- واحد- مذکر- دَ رپېدو مرض- مغه مرض چې بدن پکښې رچیږی-

گزند:(گه-زند)اسم- واحد- مذکر- درد- تکلیف- نقصان-

گزنده:(گه-زن-ده)اسم صفت- چیچونکے- ټک وركونكے-

گزول:(گه-زه-ول)مصدر متعدی- گزکول- گز سره ناپ کول- پۀ گز کول- (۲)اندازه لګول- (۳)غزول- خورول- وړدول-

گزون:(گه-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ گزول-

گزونکے:(گه-زه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ گزول-

گزونګ:(گه-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ گزول-

گزونه:(گه-زه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ گزول-

گزیده:(گه-زی-ده)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر/مؤنث- خوړلے شوے- ټک زرکړے شوے- مارخوړلے-

گزیده:(گه-زی-ده)اسم مفعول- چاڼ شوے- منتخت کړے شوے- کتلے شوے- چوڼ کړے-

گزیر:(گ-زیر)اسم- واحد- مذکر- (۱)مدد- چاره- علاج- (۲)صبر- تحمل-

گزین:(گه-زین)اسم مفعول/صفت- (۱)خوښ کړے شوے- (۲)کتلے شوے- (۳)دا لفظ دَ بعضو نامو سره دَ لاحقې پۀ طور استعمالیږی- لکه خلوت گزین، پناه گزین وغیره-

گزېدل:(گه-زی-دل)مصدر لازم- (۱)گزکېدل- گز سره ناپ کېدل- پۀ گز

لاشه:(لا-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مړ وجود- لاش- (۲)لشه- لاشۀ- (۳- صفت)مانده- تپ- کمزوری- نري نروچکې-

لاشۀ:(لا-شۀ)اسم- واحد- مؤنث- لیاشه- لیاشۀ- لشڼ- لشکه- لاشه- لیشه- لشه- (۱)د مچۍ، ډمبرې یا لړم وغیره هغه تیرۀ او زهرژن ازغی چې دښمن له پرې ټک ورکوی- (۲)د غنمو وربشو وغیره د وږی نري ازغي- (۳)د کب په وجود کښې نري تیرۀ هډوکي- (۴)بد خوی- بد عادت-

لاښ:(لاښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاش-

لاښ:(لاښ)اسم- واحد- مذکر- د غرۀ بهر ته راوتلې ډډه یا اړخ-

لاښ:(لاښ)اسم- واحد- مذکر- هغه باغ چې ټوله میوه ترې وشوکولې شي او ونې یا پټې خالي پاتې شي- تش کړې شوي باغ-

لاښول:(لا-ښه-ول)مصدر متعدی- له باغ نه میوه ټولول- باغ تشول-

لاښون:(لا-ښه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لاښول-

لاښونکې:(لا-ښه-وون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لاښول-

لاښونه:(لا-ښه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لاښول-

لاښېدل:(لا-ښې-دل)مصدر لازم- له باغ نه میوه ټولېدل- باغ تشېدل-

لاښېدن:(لا-ښې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لاښېدل-

لاښېدنه:(لا-ښې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لاښېدل-

لاښېدونکې:(لا-ښې-دون-کې)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لاښېدل-

لاښېدۀ:(لا-ښې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ لاښېدل-

لاښې:(لا-ښې)اسم- واحد- مذکر- هغه بېکاره خرابه میوه چې د باغ شوکولو نه پس په بوټو کښې پاتې وي-

لاعلاج:(لا-ع-لاج)اسم صفت- (۱)وګورئ لادوا- (۲)هغه چې څۀ حل ئې نۀ راوځي- لاینحل-

لاعلم:(لا-ع-لم)اسم صفت- هغه چې علم ورته نۀ وي- نۀ پوهېدونکې- ناخبر- ناواقف-

لاعلمي:(لا-عل-مي)اسم- واحد- مؤنث- بې خبري- ناواقفیت- نوپوهي-

لاغ:(لاغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لوبه- بازي- (۲)ظرافت- ټوقه- (۳)مکر- فرېب-

لاغر:(لا-غر)اسم صفت- مانده- کمزوری- تپ- نري نروچکې-

لاغرض:(لا-غه-رض)اسم صفت- هغه چې غرض ئې نۀ وي- بې غرضه-

لاغر نیکۀ:(لا-غر-نی-کۀ)اسم- واحد- مذکر- د نیکۀ نیکۀ- د غر یا ګر نیکۀ پلار- لاغور نیکۀ-

لاغري:(لا-غۀ-ري)اسم- واحد- مؤنث- مانده توب- کمزوري- تپوالی- مانده والی-

لاغو:(لا-غو)اسم- واحد- مؤنث- د اخلي پخلي وړوکې لاستې لرونکې کړېچې- ارکاري-

لاغور نیکۀ:(لا-غور-نی-کۀ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاغر نیکۀ-

لاغي:(لا-غي)اسم صفت- فضول خبرې کونکې- بې فائدې- بکواسي- لاپي-

لاف:(لاف)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاپ-

لافاني:(لا-فا-ني)اسم صفت- هغه چې نۀ فنا کیږي- همېشه پاتې کېدونکې-

لافو:(لا-فو)اسم صفت- وګورئ لاپزن-

لافوک:(لا-فوک)اسم صفت- وګورئ لاپزن-

لافه:(لا-فه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاپه-

لافې:(لا-فې)اسم- جمع- مؤنث- د لافه جمع- وګورئ لاپه-

لافې شافې:(لا-فې-شا-فې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ لاپ شاپ-

لاک:(لاک)صفت- واحد- مذکر- لک- نېغ- ولاړ-

لاک:(لاک)اسم- جمع- مذکر- له چینجیو پېدا کېدونکې یو قسم ځلېښناکه ماده چې عموماً د بنګړیو جوړلو او مهرونو لګولو پکار راوستې شي-

لاک پشت:(لاک-پشت)اسم- واحد- مذکر- شمشتې- کاسه کړب- سنګ پُشت-

لاکړه کاکړه:(لاکړه-کاک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د ماشومانو یو مرض چې په وجود پکښې سرې سرې دانې راوخیژي- اوږي-

لاکن:(لا-کن)حرف عطف- خو- مګر- لېکن-

لاکو:(لا-کو)اسم صفت- مسواکه ګُته- د شهادت ګُته- لګړه-

لاکي:(لا-کي)اسم صفت-(۱)د لاکو په شان رنګ لرونکې- سوربخن- (۲)د لاکو- لاکو نه جوړ-

لاکېدل:(لا-کې-دل)مصدر متعدي- لکېدل- نېغېدل- ودرېدل-

لاګ:(لاګ)اسم- واحد- (۱)تعلق- نسبت- علاقه- (۲)مینه- محبت- (۳)مزه- خوند- (۴)شوق- (۵)دشمني- عداوت- (۶)چل- شعبده- غزه- (۷)جادو- کوډې- منتر- ټوټکه- (۸)دارو- دوا- (۹)مرسته- مدد-

لاګ:(لاګ)اسم- واحد- مذکر- تجارتي لېن دېن- کاروبار- بیوپار- ورکړه راکړه- لاګي-

لاګدار:(لاګ-دار)اسم صفت- مذکر- (۱)هغه سړی چې د چا سره ئې د تجارت لېن دېن وي- (۲)خپلوان- رشته دار- (۳)دوست- اشنا-

لاګي:(لا-ګي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاګ ۲-

لاګي:(لا-ګي)اسم صفت- اعتباري- معتمد- په لېن دېن کښې کره-

لال:(لال)اسم- واحد- مذکر- یو قسم قیمتي کاڼی- لعل- (۲- صفت)سور- سوررنګې- (۳)د انګورو یو اعلی قسم-

لال:(لال)اسم- واحد- مذکر- پرتوغاښ-

لال:(لال)اسم صفت- (۱)چې خبرې نۀ شي کولی- ګونګې- (۲)تتړې- تړتړې- چاړا- نیم ژبې- تتړ-

لالا:(لا-لا)اسم صفت- (۱)خدمتګار- خدمت کونکې- (۲)پړقېدونکې- ځلان-

لالا:(لا-لا)اسم- واحد- مذکر- (۱)پلار- مشر ورور یا اوښې ته د خطاب کلمه- (۲)صاحب- معزز- جناب- ښاغلی- د هندوانو خطاب- (۳)بنیا- ساهوکار- (۴)خور- ګران- عزیز- (۵)سخر- خسر-

لال بکي:(لال-به-کي)اسم- واحد- مؤنث- د ترکاري رغې او خور لوښې- رکېبي- نال بکي-

ئ" (ځی-رل)، ئې"(مې-ره-ول)، ی"(پیا-لي)، ې"(تن-دې) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

لالټين:(لال-ټين)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاټين-
لالجن:(لال-جن)اسم- واحد- مذکر- يو قسم مشهور ساګ- ورخاړے-
لالچ:(لا-لچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)حرص- طمع- لېوالتوب- (۲)رشوت-
لالکو:(لا-له-کو)اسم- واحد- مذکر- ورور ته د مينې خطاب- وروړکے-
لال لرکے:(لال-لر-کے)اسم- واحد- مذکر- د پرتوګاښ پکے-
لالن:(لا-لن)اسم- واحد- مذکر- لالے- محبوب- معشوق-
لالنه:(لا-لۀ-نه)اسم- واحد- مؤنث- مينه- محبت-
لالواند:(لا-له-واند)اسم صفت- وګورئ لالهاند-
لالوانده:(لا-له-وان-ده)اسم صفت- متعلق فعل- وګورئ لالهانده-
لالهاند:(لا-له-هاند)اسم صفت- سرګردان- پرېشان- ګډوډ- لالهند- ترور- لهلهاند- ترمور- لالواند- لالوانده- مؤنث لالهانده-
لالهاندتوب:(لا-له-هاند-توب)اسم- واحد- مذکر- پرېشاني- سرګرداني- ترورتيا- ترمورتيا- لالهاندتيا- لالهاندي- لالهندتيا- لالهندي- لالهندتوب-
لالهاندتيا:(لا-له-هاند-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لالهاندتوب-
لالهاندول:(لا-له-هان-ده-ول)مصدر متعدي- سرګردانول- پرېشانول- پرېشانه کول- ترورول- ګډوډ کول- وارخطا کول- لالهندول-
لالهاندون:(لا-له-هان-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ لالهاندول-
لالهاندونکے:(لا-له-هان-ده-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لالهاندول-
لالهاندونه:(لا-له-هان-ده-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لالهاندول-
لالهانده:(لا-له-هان-ده)اسم صفت- (۱)وګورئ لالهاند- (۲- متعلق فعل)پۀ بده زړۀ- ترور- پۀ پرېشانئ- سرګردانئ سره-
لالهاندي:(لا-له-هان-دي)اسم- واحد- مؤنث- لالهندي- وګورئ لالهاندتيا-
لالهاندېدل:(لا-له-هان-دې-دل)مصدر لازم- سرګردانېدل- پرېشانېدل- پرېشانه کېدل- ترورېدل- ګډوډېدل- وارخطا کېدل-
لالهاندېدن:(لا-له-هان-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لالهاندېدل-
لالهاندېدنه:(لا-له-هان-دې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لالهاندېدل-
لالهاندېدونکے:(لا-له-هان-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لالهاندېدل-
لالهاندېده:(لا-له-هان-دې-دۀ)حاصل مصدر- وګورئ لالهاندېدل-
لاله:(لا-له)اسم- واحد- مذکر- يو سور رنګ لرونکے ګل چې پۀ مېنځ کښې پرې يو تور داغ وی- خانتول- غاټول- غټول- نباتاتی نوم ليرووډينډران -(LIRIODENDRON)
لاله رخ:(لا-له-رخ)اسم صفت- مرکب- (۱)د لاله پۀ شان مخ لرونکے- د لاله پۀ شان ښائسته- (۲)محبوب- معشوق- لاله رخسار- لاله رو-
لاله رخسار:(لاله-رخ-سار)اسم صفت- مرکب- وګورئ لاله رخ-
لاله رو:(لا-له-رو)اسم صفت مرکب- وګورئ لاله رخ-
لاله زار:(لا-له-زار)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه ځائے چې د لاله ګلونه پکښې ډېر وی- (۲)چمن-
لاله سرے:(لا-له-سه-رے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم سور سر لرونکې مرغۍ- ترمی- سورسرے- ترمتے- تلمتے-
لاله فام:(لا-له-فام)اسم صفت- (۱)سور رنګ لرونکے- سور رنګے- (۲)ښکلے- ښائسته-
لاله مثال:(لا-له-م-ثال)صفت- مرکب- (۱)د لاله پۀ شان سور- (۲)ښکلے- ښائسته-
لالهند:(لا-له-هند)اسم صفت- وګورئ لالهاند-
لالهندتوب:(لا-له-هند-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لالهاندتيا-
لالهندتيا:(لا-له-هند-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لالهاندتيا-
لالهندول:(لا-له-هند-ده-ول)مصدر متعدي- وګورئ لالهاندول سره د لوازماتو-
لالی:(لا-لی)اسم- واحد- مذکر- لالا- مشر ورور-
لالېدل:(لا-لې-دل)مصدر لازم- للېدل- اوبزاندېدل-
لالۍ:(لا-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- مېنا- خارو-
لالے:(لا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)محبوب- جانان- دلبر- اشنا- (۲)وړوکی ماشوم ته د مينې خطاب-
لالے:(لا-لے)اسم- واحد- مذکر- د غاړې يو پسول- کالے- غاړکی-
لام:(لام)اسم- واحد- مذکر- (۱)د فوځ يا پلټنې مجموعه- (۲)د جنګ پۀ نيت د فوځ غنډه- د جنګ تيارې-
لام:(لام)اسم- واحد- مذکر- د تصوف پۀ اصطلاح کښې عالم لاهوت ته وائی يعنې د ذات الهی علم چې سالک پکښې د فنا فی الله درجې ته ورسی-
لام:(لام)اسم صفت- (۱)کوږ وږ- تاؤ راتاؤ- د حرف "ل" پۀ شان- (۲)د حرف "ل" تلفظ-
لاما:(لا-ما)اسم- واحد- مذکر- د تبت د بُدۀ پېشواګانو لقب-
لامبا:(لام-با)اسم- واحد- مؤنث- لمبنه- غسل کونه- پۀ وجود اُبۀ تېرونه- لامبنه-
لامبات:(لام-بات)اسم- جمع- مذکر- نابات- نانبات- نبات- مصری- خواږۀ-
لامبل:(لام-بل)مصدر متعدي- لمبل- غسل کول- پۀ ټول وجود اُبۀ تېرول-
لامبنه:(لام-بۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لامبل-
لامبو:(لام-بو)اسم- واحد- مؤنث- پۀ ژورو اُبو کښې د ګرځېدو يا تېرېدو فن- لانبو-
لامبوزن:(لام-بو-زن)اسم صفت- (۱)لامبو وهونکے- د لامبو پۀ فن پوهه- لامبېزن- تيراک- لانبوزن- (۲)تجربه کار-
لامبېزن:(لام-بې-زن)اسم صفت- وګورئ لامبوزن-
لامتناهی:(لا-م-ته-نا-هی)اسم صفت- وګورئ لامحدود-
لامحاله:(لا-مه-حا-له)متعلق فعل- يقيناً- بالضرور- خامخا-
لامحدود:(لا-مح-دود)اسم صفت- هغه چې حد ئې نۀ وی- بې انتها- ډېر زيات- لامتناهی-

لامده:(لام-ده)اسم صفت- مؤنث- لمده- لونده- نمژنه-

لامدۀ:(لام-دۀ)اسم صفت- جمع- د لوند جمع- لوندۀ- نمژن- لواندۀ-

لامذهب:(لا-مذ-هب)اسم صفت- هغه چې مذهب نۀ لرى- بې دينه- دهريه- لامذهبه-

لامذهبه:(لا-مذ-هه-به)اسم صفت- وګورئ لامذهب-

لامرکزيت:(لا-مر-که-زي-يت)اسم- واحد- مذکر- (۱)مرکز نۀ لرنه- (۲)مرکزى حکومت ماتونه- (۳)د بېنکارى يوه اصطلاح-

لامس:(لا-مس)اسم صفت- ګـتې وروړونکـے- څۀ څيز پۀ ګـتو وروړو معلومونکے- پۀ څۀ څيز پسې ګـتې جنګونکے- ګـتې ابشودونکے-

لامسه:(لا-م-سه)اسم- واحد- مؤنث- څۀ څيز له د ګـتو وروړو قوت- پۀ ګـتو د څۀ څيز د معلومولو قوت- د ګـتو ابشودو قوت-

لامع:(لا-مع)اسم صفت- پرقيدونکے- روښان- ځلان- ځلاند-

لامکان:(لا-مه-کان)اسم- واحد- مذکر- (۱)د خدایٔ پاک د وجود پۀ سلسله کښې هغه چې لۀ ماديته وُچت دے- (۲)هغه ذات چې مکان نۀ لرى-

لام کلام:(لام-که-لام)اسم مرکب- مذکر- سلام کلام- خبرې اترې- علېک سلېک- ګړه بړه-

لام لباس:(لام-ل-باس)اسم مرکب- جامه- چال چلن- ګړۀ وړۀ-

لامه:(لا-مه)اسم- واحد- مؤنث- کرډار- لامے-

لامے:(لا-مے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لامه-

لان:(لان)اسم- واحد- مذکر- د وښو قطعه- سبزه زار- شينکے-

لان:(لان)اسم- واحد- مذکر- بې وفائى-

لانبو:(لام-بو)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لامبو-

لانبوزن:(لام-بو-زن)صفت- مذکر- وګورئ لامبوزن-

لانجه:(لان-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مسئله- پېښه- جنجال- مصيبت- شخړه- ربړه- جګړه- (۲)پېچيده خبره- تاؤ راتاؤ خبره- جمع لانجې-

لانجه کونجه:(لان-جه-کون-جه)اسم- واحد- مؤنث- لانجه- مسئله- جګړه- ربړه- جمع لانجې کونجې-

لانجه مار:(لان-جه-مار)اسم صفت- لانجه کونکے- بدمعامله- جنجالى- جګړمار-

لانجين:(لان-جين)اسم- واحد- مذکر- د عمارتونو جوړولو پۀ غرض د چونې او مسالې جوړولو کنده-

لانجې کونجې:(لان-جې-کون-جې)اسم- جمع- مؤنث- وګورئ لانجه کونجه-

لاندينے:(لان-دي-نے)اسم صفت- هغه چې لاندې وى- ښکتنے- ښکېنے- کُوزنے-

لاندې:(لان-دې)متعلق فعل/صفت- کوز- ښکته- زېر-

لاندې ابستل:(لان-دې-ابس-تل)مصدر متعدى- لاندبستل-

لاندې باسل:(لان-دې-با-سل)مصدر متعدى- وګورئ لاندبستل-

لاندې باندې:(لان-دې-بان-دې)متعلق فعل- (۱)کوز پاس- ښکته پورته- ټول- (۲)يو د بل د پاسه-

لاندبستل:(لان-دبس-تل)مصدر متعدى- (۱)لاندې باسل- لاندې ابستل- لاندې کول- زېر کول- (۲)راپرځول- راغلمول- راغرځول- (۳)ګېرول- رانيول- راړول-

لاندبستنه:(لان-دبس-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لاندبستل-

لاندبستون:(لان-دبس-تون)اسم- واحد- مذکر- بستره چې د کټ د پاسه خورولے شى- تولائى- توشک- تورشک- لاندبستونے-

لاندبستونکے:(لان-دبس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لاندبستل-

لاندبستونے:(لان-دبس-تو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاندبستون-

لاندبستۀ:(لان-دبس-تۀ)حاصل مصدر- وګورئ لاندبستل-

لاندے:(لان-دے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وچه غوښه- (۲)ګډ- پسۀ-

لاندے باندے:(لان-دے-بان-دے)اسم مرکب- مذکر- (۱)ښکته والے پورته والے- (۲)تعلق- راشه درشه- واسطه- (۳)شخړه- ربړه- تنازعه- (۴)کمے زياتے-

لاندبس:(لان-دبس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ املتاس-

لانکه:(لانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د يوې ونې نامه چې لرګے ئې ډېر سخت وى- (۲)وګورئ لنګه-

لانه:(لا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لانى-

لانى:(لا-نى)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم واښۀ چې د اوښانو مرغوبه خوراکه ده ايره ئې د کپړو وينځلو پکار راځى- لاړه- لانه-

لاوا:(لا-وا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاوه-

لاوارث:(لا-وا-رث)اسم صفت- هغه چې څوک وارث يا حقدار نۀ لرى- چې څوک حقدار ئې نۀ وى-

لاوبالى:(لا-وَ-با-لى)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاأبالى-

لاوبال:(لا-وَ-بال)اسم صفت- مذکر- وګورئ لاأبال-

لاورے:(لاو-رے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم زېړ ګل لرونکے بوټے چې د پسرلى پۀ موسم کښې کيږى او د وښو پۀ توګه استعمالولے شى-

لا وړم:(لا-وړم)اسم صفت- لا بل- لۀ تېر شوى نه مخکښې تېر شوے- لۀ بل نه وړاندې- لۀ وړم نه وړاندې- عموماً د کال سره راځى لکه لا وړم کال-

لا وړمه:(لا-وړ-مه)اسم صفت- مؤنث- لا بله- لۀ تېرې شوې نه مخکښې تېره شوې- لۀ وړمې نه وړاندې- عموماً د ورځې يا شپې سره راځى لکه وړمه ورځ- وړمه شپه-

لاوړے:(لاو-ړے)اسم- واحد- مذکر- مولے- غريخے-

لاؤ لښکر:(لاؤ-لښ-کر)اسم مرکب- مذکر- دبدبه- شان و شوکت- زور او قوت-

لاون:(لا-ون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاوڼ-

لاوڼ:(لا-وڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)زېړې شلومبې- پۀ بتى کړې ټينګې شلومبې- (۲)نګلے- ترکارى- سالن- پخکړے- اينکولے-

ئ (ځي-رل)، ي (مې-ره-ول)، ى (ېيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱.

لاوني لكاوني:(لاو-ني-له-كاو-ني)اسم- جمع- مؤنث- چغل خوری- چغلی- وره راوره- د دوؤ کسو په مينځ کښې شيطاني کونه-

لا مم:(لا-مم)متعلق فعل- (۱)تر اوسه- لا پورې- (۲)نور پرې د پاسه-

لاهو:(لا-هو)اسم صفت- (۱)اُبو بوب کړے- غرق- اُبو وړے- (۲)ضائع- توې-

لاهوت:(لا-هوت)اسم- واحد- مذکر- په تصوف کښې د مقاماتو هغه درجه چې سالک ته پکښې د فنا فی الله مقام حاصليږی-

لاهوره:(لا-هو-ره)اسم- واحد- مؤنث- د خټکی خربوزې وغيره ټنکری- ترازه-

لاهه:(لا-هه)اسم- واحد- مؤنث- لهه- خېه- چقړه- پسخه- نرمه خټه- جمع لاهې-

لاې:(لا-ې)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)ختې- لهې- لاهې- چقړې- (۲)د مائع څيز خيرے چې د لوښی په وېخ کښې کښېني-

لاې:(لا-ې)اسم- واحد- مؤنث- نغښته- نغښتنه- غنړونه- نغاړنه-

لائبرېری:(لا-ئب-رې-ری)اسم- واحد- مؤنث- کُتب خانه- دارالمطالعه-

لائبرېرين:(لا-ئب-رې-ری-ين)اسم- واحد- مذکر- د کُتب خانې ناظم- لائبرېری چلونکے-

لائټ:(لائټ)اسم- واحد- مؤنث- رڼا-

لائخ:(لا-يخ)اسم صفت- څرګند- ښکاره- ظاهر-

لائحه:(لا-ئ-حه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)څه روښان څيز- واضح څيز- ښکاره څيز- (۲)ثبوت- (۳)فهرس- (۴)پروګرام- منصوبه-

لايزال:(لا-يه-زال)اسم صفت- (۱)زوال نه لرونکے- همېشه پاتې کېدونکے- دائمی- (۲)د الله تعالی صفت-

لائسنس:(لا-ئ-سنس)اسم- واحد- مذکر- اجازت نامه-

لايعقل:(لا-يع-قل)صفت- واحد- مذکر- بې عقله- لېونے-

لايعنی:(لا-يع-نی)اسم صفت- فضول- بې معنې- بې فائدې-

لائق:(لا-ئق)اسم صفت- (۱)قابل- مناسب- موزون- (۲)جائز- (۳)درست- سم- صحيح- (۴)اهل- جوګه-

لائقت:(لا-ئ-قت)اسم- واحد- مذکر- قابليت- لياقت- پوهه-

لائم:(لا-ئم)اسم صفت- ملامته کونکے- رټونکے- پړونکے- پړکونکے-

لايموت:(لا-يه-موت)اسم صفت- غير فانی- نه مړکېدونکے- (۲)هغه خوراک چې صرف د ژوند قائم ساتلو د پاره کافی وی-

لائن:(لا-ئن)اسم- واحد- مذکر- کرښه- خط- د رېل ګاډی پاټلی- (۲)طرز- انداز- جمع لائنونه-

لاينحل:(لا-ين-حل)اسم صفت- نه حل کېدونکے- پېچيده- ګران-

لاينفک:(لا-ين-فک)اسم صفت- هغه چې جدا کيږی نه- نه جُدا کېدونکے-

لاينقطع:(لا-ين-قه-طع)اسم صفت- نه پرې کېدونکے- مسلسل-

لايه:(لا-يه)اسم صفت- تش- خالی- هسې- وزګار- ليه- ليا- خوشے- ايله-

لابه:(لا-يه)اسم- واحد- مؤنث- برتی- د کم قيمت څيز چې په بل څيز کښې ګډ کړے شی او مطلوبه مقدار برابر وی-

لب:(لب)اسم- واحد- مذکر- (۱)شونډه- (۲)ژی- غاړه- (۳)ډډه- طرف- اړخ- (۴)ساحل- د درياب غاړه- (۵)حاشيه- (۶)بلی-

لب:(لب)اسم- واحد- مذکر- نچوړ- اُبه- رس- عطر- جوهر- مغز- (۲)عقل او پوهه-

لب:(لب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ټول- تمام- (۲)صرفه- اسره- دريغ-

لباده:(له-با-ده)اسم- واحد- مؤنث- جغ- هغه اله چې د قلبې کولو په وخت د دواړو غوايانو په څټ پرته وی او دواړه غوايان پرې يوځاې تړلے شی-

لباده:(له-با-ده)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم نرمه نرمه چغه- اندرکه-

لباړ:(له-باړ)اسم صفت- ناخبره- نادان- ناپوهه-

لباس:(ل-باس)اسم- واحد- مذکر- (۱)جامې- کپړې- پوشاک- (۲)شکل- وضع- ډوله-

لباس:(ل-باس)اسم- واحد- مذکر- (۱)ظاهرداری- ډول ډال- (۲)رياکاری- خان ښودنه- (۳)فريب- چل ول- ټګی-

لباسی:(ل-با-سی)اسم صفت- رياکار- ټګوُن- دوکه باز- له رياکاری کار اخستونکے-

لباف:(له-باف)اسم صفت- رسی خرڅونکے- د رسيو او پړيو کاروبار کونکے-

لب جب:(لب-جب)اسم- واحد- مذکر- په څه طريقه باندې خپل مقصد حاصلونه- ټپل ټال-

لبېړ:(له-به-ړ)اسم صفت- عټ کټ- بدشکله- بې ډوله- مؤنث لبېړه-

لبه پېده:(لب-ه-پې-ده)متعلق فعل- په لوی لاس- رڼبه- ديده و دانسته-

لبرل:(لب-رل)اسم صفت- ازاد- خودمختار- د ټولو ښېګړه غښتونکے-

لبرل ازم:(لب-رل-ا-زم)اسم- واحد- مذکر- ازادخيالی- د جمهوری او معاشرتی اصطلاحاتو د موافقت نظريه-

لبرېز:(لب-رېز)اسم صفت- ډک- خلې تر خلې- مؤنث لبرېزه-

لبړو:(لب-ړو)اسم صفت- مؤنث- دروغژنه- بې هوده- بکواسی ښځه-

لبړه:(لب-ړه)اسم- واحد- مؤنث- مسئله- لانجه- ربړه- شخړه- جګړه-

لبغ:(له-بغ)اسم- واحد- مذکر- يوه زوړې پېښې از زرده غړی لرونکې مرغی- ډينګ-

لبغړے:(له-به-غه-ړے)اسم صفت- مذکر- (۱)نادار- مفلس- بې وسه- (۲)کمزورے- ناتوان- (۳)بربنډ- لوڅ لغړ-

لبلاب:(لب-لاب)اسم- واحد- مذکر- يو قسم خېلی لرونکے بوټے- پېروته- پېروتی- پېرچه- نباتاتی نوم هېډېرا هېلکس (HEDERA HELIX)-

لب لباب:(لُب-ب-ل-باب)اسم- واحد- مذکر- خلاصه- نچوړ- ماحصل-

لبلبو:(لب-له-بو)اسم- واحد- مذکر- د تېپرو د قسم يو بوټے چې چينی ترې وېستے شی- چقندر- نباتاتی نوم د پاره زکوری چقندر-

لبلے:(لب-لے)اسم- واحد- مذکر- زکوری چريکے-

لبن:(له-بن)اسم- جمع- مذکر- پې- شوده- شير-

لبنيات:(له-بن-يات)اسم- جمع- مذکر- له پيو جوړ شوی خيزونه-

زېر "(خ-بۀ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زبر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، "ۀ" (ز-ره)، "ۀ" (پو-بې-دۀ).

لبوب:(ل-بوب)اسم- جمع- د لب جمع- وګورئ لب-

لبوړے:(له-بو-ړے)اسم- واحد- مذکر- د غرۀ کولیچ- ورسک- د غرۀ تېره څوکه- د غرۀ وربوز- د غرۀ پوزه- لبوزه- لبوزے-

لبوزه:(له-بو-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لبوړے-

لبوزے:(له-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لبوړے-

لبول:(له-به-ول)مصدر متعدی- لوبول- پۀ لوبه کښې خان سره شاملول- پۀ لوبو کول- وګورئ لوبول سره د لوازماتو-

لبه:(له-به)اسم- واحد- مؤنث- لوبه- جمع لبې-

لبيب:(له-بيب)اسم صفت- دانا- ښيار- عقلمند- هوښيار-

لبيک:(لب-بيک)کلمه ايجاب- زۀ حاضر يم- زۀ موجود يم-

لبے:(له-بے)اسم- واحد- مذکر- د مرغيو نيولو دام-

لپ:(لپ)اسم صفت- مذکر- وګورئ لپه-

لپ څټ:(لپ-څټ)اسم صفت- اباد- ښېراز- زر توکے- لپ ست-

لپ خور:(لپ-خور)اسم صفت- ملامت- پښېمان- ستومان- پۀ خپلو کړو خفه-

لپړ:(له-پړ)اسم- واحد- مذکر- رېږدېدنه- رپ ربے- لرزه- لړزان-

لپړ:(له-پړ)اسم صفت- بربنډ- لغړ- د لوڅ سره استعماليږی-

لپړ:(له-پړ)اسم صفت- (۱)د هوار ضد- کږوږ- کندوکپر- (۲)غېر مهذب- (۳)خوشے ګرځېدونکے- اواره ګرد- (۴)بدکار-

لپړل:(لپ-ړل)مصدر متعدی- پۀ يو مخصوصه طريقه پۀ لوبه کښې د دوؤ مشرانو ملکانو خان خان له د نورو ملګريو انتخاب کول-

لپړن:(لپ-ړن)حاصل مصدر- وګورئ لپړل-

لپړنه:(لپ-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لپړل-

لپړو:(لپ-ړو)اسم صفت- (۱)وګورئ لاپړن- (۲)خوشے ګرځېدونکے- اواره ګرد-

لپړونکے:(لپ-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لپړل-

لپړه:(لپ-پۀ-ره)اسم صفت- مؤنث- بدکاره- کنجره- بدچلنه-

لپړی:(لپ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- بې کاره ګرځېدنه- اواره ګردی-

لپړی:(لپ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پټی- دسماله- پهه- (۲)پټکے- دستار-

لپړی:(لپ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- زړه شلېدلې کپړه- صافی-

لپ ست:(لپ-ست)اسم صفت- وګورئ لپ څټ-

لپو:(له-پو)اسم- واحد- د أبو چپه- څپه- موج-

لپوس:(له-پوس)اسم صفت- تنګدست- ناچار- بې وسه- مؤنث لپوسه-

لپه:(له-په)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د څۀ څيز د ناپ کولو يا راچولو د پاره راغنډ کړے شوی دواړه غبرګ چونګه- (۲)د دواړو غبرګو چونګو مقدار-

لپيت:(له-پيت)اسم- واحد- مذکر- لۀ پيو يا ماستو نه جوړ کړے شوے يو قسم نمکين خوراک- قوه-

لت:(لت)اسم- واحد- مذکر- (۱)خراب عادت- بد عادت- (۲)خوی- خصلت- علت- (۳)د پښې ګوزار- لته- (۴)لاټ- امير- دولتمند- مؤنث لته-

لتار:(له-تار)اسم صفت- (۱)چخنبی شوے- پائمال- تس نس- (۲)اخته- نښتے- ککړ- (۳)تباه برباد- وران ويجاړ- مؤنث لتاړه-

لتاړول:(له-تا-ړه-ول)مصدر متعدی- (۱)چخنبی کول- پائمالول- تس نس کول- (۲)تباه کول- بربادول- ويجاړول- (۳)اخته کول- نښلول- ککړول-

لتاړون:(له-تا-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لتاړول-

لتاړونکے:(له-تا-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لتاړول-

لتاړونه(له-تا-ړه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لتاړول-

لتاړېدل:(له-تا-ړې-دل)مصدر لازم- چخنبی کېدل- پائمالېدل- تس نس کېدل- تباه کېدل- (۲)اخته کېدل- نښتل- اوړېدل-

لتاړېدن:(له-تا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لتاړېدل-

لتاړېدنه:(له-تا-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لتاړېدل-

لتاړېدونکے:(له-تا-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لتاړېدل-

لتاړېدۀ:(له-تا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لتاړېدل-

لت پت:(لت-پت)اسم صفت- لټ پټ- (۱)لتولے- چاڼ کړے شوے- پۀ هر اړخ کتلے- (۲)ګډوډ- دانه دانه- (۳)لېت پېت- لړلے- ککړ- (۴)خراب- پۀ بد حال-

لت کوپړی:(لت-کوپ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- کډه کوډه- مختلف اوزار يا سامان- لوښی لرګی- ډول ډبلی- کاډې کوډې- لټ کوپړی-

لتوبړے:(له-توب-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اتوب-

لتوکے:(له-تو-کے)اسم- واحد- مذکر- يوه پلنې پاڼې او ښويه لښتې لرونکی زنه-

لته:(له-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)علاقه- خوا- خاوره- (۲)لار- لاره-

لته:(له-ته)اسم- واحد- مؤنث- زړې جامې- زوړ لباس- کيندړې-

لتی:(له-تی)اسم- واحد- مؤنث- د کشتۍ يو داؤ- د حريف د راغرځولو پۀ غرض د غڼۀ پښې ته پښه اړمونه- لنګتی- انګړيتی- اړنګتی- اړنګی- ړنګتی-

لټ:(لټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اړټ يا د ګاڼې يوه پرزه چې څرخ پرې چورلی- محور- څورلېځ- (۲)د مارغانو يا کيدړانو نيولو کړکی- پړکه-

لټ:(لټ)صفت- واحد- مذکر- ناراست- بېکاره- سُست- ارام طلب- بُوم- بېخنخه- ناړام-

لټ:(لټ)اسم- واحد- مذکر- حد- پوله- بريد- بند- کرښه-

لټ:(لټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)لړی- ولونه- (۲)رسی- بياسته-

لټ پټ:(لټ-پټ)اسم صفت- (۱)اړولے شوے راړولے شوے- اړخ پۀ اړخ کتلے شوے- لټولے شوے- (۲)وګورئ لت پت-

لټ پټی:(لټ-په-ټی)اسم صفت- مؤنث- وګورئ اړوونې-

لټ پر لټ:(لټ-پر-لټ)متعلق فعل- ډوډې پۀ ډډې- اړخ پۀ اړخ- لټ پۀ لټ- لټ پۀ لته- ګټ پۀ ګټ-

ی (ښی-رل)، ي (مې-ره-ول)، ۍ (پيا-لې)، ې (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

لټ پهٔ لټ:(لټ-پهٔ-لټ)متعلق فعل- وګورئ لټ پر لټ-

لټ پهٔ لټه:(لټ-پهٔ-له-ټه)متعلق فعل- وګورئ لټ پر لټ-

لټپېر:(لټ-پېر)اسم- واحد- مذکر- حمله- يرغل- هله- ناڅاپي حمله-

لټ توب:(لټ-توب)اسم- واحد- مذکر- سُستي- ناراستي- لټتيا- ارام طلبي- لټوالے-

لټتيا:(لټ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لټ توب-

لټر پټر:(له-ټر-په-ټر)اسم- جمع- مذکر- الا بلا- بلا بېټ- يو څهٔ بل څهٔ- مختلف څيزونه- لټه پټه-

لټرى:(لټ-رى)اسم- واحد- مؤنث- دَ غلې يو قسم- لوبيا- نباتاتي نوم ډوليکاس سائننسس (DOLICHOS SINENSIS)-

لټ کوپرى:(لټ-کوپ-رى)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لت کوپړى-

لټکه:(له-ټه-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ مار يو قسم- دوسرې- لنډۍ- کورمار- جمع لټکې-

لټکه:(له-ټه-که)اسم- واحد- مؤنث- پڅه توره- خله اړولې تُوره-

لټکه:(لټ-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ پنډ هغه حصه چې بکرې له يُ راخلاصوى او اُور ترې پيدا کيږى-

لټنډ:(له-ټنډ)اسم صفت- (۱)وارخطا- ناقلار- مضطرب- (۲)لټونکے- پلټنډ-

لټوالے:(لټ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لټتوب-

لټول:(له-ټه-وَل)مصدر متعدى- ناراسته کول- سستول- نارامول- بُومول-

لټول:(له-ټه-وَل)مصدر متعدى- معلومول- کتل- لټون کول- دَ راپېدا کولو کوشش کول-

لټولے:(له-ټه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لټول ۲-

لټون:(له-ټه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لټول-

لټون:(له-ټُون)اسم- واحد- مذکر- پوړون- تلاش- معلومونه- کتنه- لټه- را پيدا کونه-

لټون:(له-ټه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لټول-

لټونکے:(له-ټه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لټول-

لټونکے:(له-ټه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لټول-

لټونه:(له-ټه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لټول-

لټونه:(له-ټه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لټول-

لټه:(له-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لټون-

لټه:(له-ټه)اسم صفت- دَ لټ مؤنث- ناراسته- سسته- نارامه- بُومه- جمع لټې-

لټه:(له-ټه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم سپينه تاريزه کپړه-

لټه:(له-ټه)اسم- واحد- مؤنث- غم- دَ زړهٔ نُول- درد- جمع لټې-

لټه پټه:(له-ټه-په-ټه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لټر پټر-

لټه پېر:(له-ټه-پېر)اسم- واحد- مذکر- تبل ټال- خرمستي- انهوخر-

لټېدل:(له-ټې-دَل)مصدر لازم- معلومول- تلاش کېدل- کتلے کېدل- پوړون کېدل- دَ راپېدا کېدو کوشش کېدل-

لټېدل:(له-ټې-دَل)مصدر لازم- ناراستېدل- سستېدل- نارامېدل-

لټېدن:(له-ټې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ لټېدل ۱، ۲-

لټېدنه:(له-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لټېدل-

لټېدنه:(له-ټې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لټېدل-

لټېدونکے:(له-ټې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لټېدل-

لټېدونکے:(له-ټې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لټېدل-

لټېدهٔ:(له-ټې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ لټېدل-

لټېدهٔ:(له-ټې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ لټېدل-

لټېره:(له-ټې-ره)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- ناراست- لټ يا لټه- ارام طلب-

لټېنګر:(له-ټېنګ-کر)اسم- واحد- مذکر- دَ مُلخانو يو قسم-

لثق:(له-ثق)اسم- واحد- مذکر- لوندوالے- نم والے- لوندېدنه- خشتوالے-

لثم:(له-ثم)اسم- واحد- مذکر- ښه وركونه- ښکلېدنه- چپېدنه- څپېدنه-

لثه:(له-ثه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غاښونو لهٔ وېخ نه چاپېره غوښه- ورى-

لج:(لَج)اسم- واحد- مذکر- (۱)ضد- مخالفت- خپل- موږه- (۲)لانجه- شخړه-

لج:(لَج)اسم- واحد- مذکر- لته- لت- لغته- دَ پښې ګوزار-

لجاجت:(له-جا-جت)اسم- واحد- مذکر- عاجزى- زارى- منت- خوشامندى- (۲)ضد- لج- خپل- موږه- (۲)لانجه- تنازعه-

لجام:(له-جام)اسم- واحد- مذکر- واګې- لګام- ملونه-

لجلاج:(لج-لاج)اسم صفت- (۱)تتړے- نيم ژبے- تړتړے- ګنګوړے- (۲- اسم- واحد- مذکر)صفا کړے شوې پاره-

لجم:(له-جم)اسم- واحد- مذکر- دَ تالاب پهٔ وېخ کښې جمع شوې بدبويه لهه، ختّه- لجن-

لجن:(له-جن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لجم-

لجنه:(لج-نه)اسم- واحد- مؤنث- مرکه- انجمن- جرګه- کميټي-

لجوج:(له-جُوج)اسم صفت- ضد- جګړمار- پهٔ خپله خبره ضدى کونکے- خپلى- موږى-

لجه:(له-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سيند- سين- درياب- (۲)چورلندے- غُولى- ګرداؤ- ګرداب-

لجين:(له-جين)اسم- واحد- مذکر- سپين زر- چاندى-

لچ:(لَچ)اسم صفت- ولاړ- نېغ- لک-

لچ:(لَچ)اسم- واحد- مذکر- رخسار- بارخو- غمبورے-

لچ:(لُچ)اسم صفت- (۱)بربنډ- لغړ- لُڅ- لوڅ- لپړ- (۲)بدکار- بدچلن- اواره-

لچ:(لچ)اسم- واحد- مذکر- دَ زخم خُله ورتلنه- پوټ نيونه- انګورېدنه-

لچ:(لچ)اسم- واحد- مذکر- دَ زخم درد- خوږ- څړيکه-

لچر:(له-چر)اسم صفت- کمينه- رذيل- لوچه- کم اصل- بې شرم- بې حيا- لُچه- لُچک- لنډور- سپين سترګے- مؤنث لچره-

لچرتوب:(لہ-چر-توب)اسم- واحد- مذکر- کمینگي- رذالت- لوچه توب- بې شرمي- بې حیائي- لنډورتوب- لچرتیا- لچري- لنډورتیا-

لچرتیا:(لہ-چر-تیا)اسم- مؤنث- وګورئ لچرتوب-

لچري:(لہ-چہ-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لچرتوب-

لچک:(لہ-چک)اسم- واحد- مذکر- د سر تړلو رومال- کپړه- سرپیچک-

لچک:(لہ-چک)اسم- واحد- مذکر- (۱)پوست والے- نرمي- (۲)د څهٔ څیز پهٔ نزاکت سره حرکت کونه- (۳)د اجسامو د غځېدو، کږېدو، راغنډېدو او بېرته خپل حالت ته د تلو قوت- (۴)کږوالے- خم- کوږوالے-

لچک:(لہ-چک)اسم صفت- وګورئ لچر-

لچکے:(لہ-چہ-کے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ دوُک تاؤ شوے تار-

لچن:(لہ-چن)اسم- واحد- مذکر- د سترګې یا ګُتې زخم چې څړیکې وهي-

لچن:(ل-چن)اسم صفت- بربنډ- لوڅ- لغړ- لپړ- (۲- اسم- واحد- مذکر)د بوټیو نازکې ریښې-

لچنه:(لہ-چهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- تادي- تُندي- جلتي-

لچه:(ل-چه)اسم صفت- وګورئ لچر-

لچه پیتو:(لہ-چه-پي-تو)اسم- واحد- مؤنث- د ماشومانو یوه لوبه-

لغ:(لغ)اسم صفت- (۱)بربنډ- لوڅ- لغړ- لپړ- (۲)نادار- بې وسه- مؤنث لغه-

لغ پغ:(لغ-پغ)اسم صفت- بیخي بربنډ- بالکل لوڅ- لوغ لغړ- لغ لغړ- لغ لپړ- لوغ پوغ- لوغ لپړ- مؤنث لغه پغه-

لغ لپړ:(لغ-لهٔ-پړ)اسم صفت- وګورئ لغ پغ-

لغ لغړ:(لغ-لہ-غړ)اسم صفت- وګورئ لغ پغ-

لغول:(لهٔ-غه-ول)مصدر متعدی- بربنډول- لوڅول- لغړول- ښکاره کول-

لغون:(لهٔ-غه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لغول-

لغونکے:(لهٔ-غه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغول-

لغونګ:(لهٔ-غه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لغول-

لغونه:(لهٔ-غه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغول-

لغه:(لهٔ-غه)اسم صفت- د لغ مؤنث- وګورئ لغ-

لغېدل:(لهٔ-غې-دل)مصدر لازم- بربنډېدل- لوڅېدل- لغړېدل- ښکاره کېدل-

لغېدن:(لهٔ-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لغېدل-

لغېدنګ:(لهٔ-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لغېدل-

لغېدنه:(لهٔ-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغېدل-

لغېدونکے:(لهٔ-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغېدل-

لغېده:(لهٔ-غې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ لغېدل-

لغۍ:(لہ-غۍ)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ لاس د ګرخولې شوې وړې ګونجي- ګنجي- پوخۍ- پونۍ-

لحاظ:(ل-حاظ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نظر- (۲)مخ- خاطر- (۳)شرم- حیا- (۴)مروت- سړیتوب- (۵)خیال- پام- پرهېز- احتیاط- (۶)توجه- پام- (۷)غیرت-

لحاف:(ل-حاف)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ مالوچو ډکه بړستن- نالي- نیالي-

لحام:(لہ-حام)اسم- واحد- مذکر- (۱)قصاب- (۲)غوښې-

لحان:(ل-حان)اسم صفت- سندرغاړے- سندره ویونکے-

لحد:(لہ-حد)اسم- واحد- مذکر- قبر- مزار- ګور- د قبر پهٔ مینځ کښې مغه ژوره کنده چې مړے پکښې ایښودے شي- جمع لحدونه-

لحظه:(لح-ظه)اسم- واحد- مؤنث- د وخت معمولی حصه- ساعت- ګړي- شېبه- دم-

لحم:(لحم)اسم- واحد- مذکر- غوښه-

لحن:(لحن)اسم- واحد- مذکر- ښهٔ اواز- خوږ اواز-

لحیم:(لہ-حیم)اسم صفت- غوښن- څرب- تیار- غټ- چاق-

لحیم شحیم:(لہ-حیم-شه-حیم)اسم صفت- غټ کټ- صحتمند- تندرست- څرب او غټ-

لحیه:(لح-یه)اسم- واحد- مؤنث- ږیره- ژیره-

لخ:(لخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم د مزری پهٔ شان وړدې پاڼې لرونکې واښهٔ چې شکرۍ، پوزکۍ، پړۍ وغېره ترې جوړولے شي- لوخه- (۲- صفت)کوږ- کړوپ- خمیده- نباتاتی نوم ټاییفاانګستې فولیا (TYPHA ANGUSTIFOLIA)-

لخ:(لخ)اسم- واحد- مذکر- نرمه خټه- لهه- لاۍ- لخه-

لخت:(لخت)اسم- واحد- مذکر- ټوکړه- ټکړه- حصه- برخه- ټوټه-

لخت:(لخت)اسم صفت- بربنډ- لوڅ- لغ- لغړ-

لخت جګر:(لخ-ت-ج-ګر)مرکب اضافی- (۱)د ځیګر ټکړه- (۲)بچے- خوې- زوئ- لور-

لخته:(لخ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لشته-

لختي:(لخ-تي)اسم- واحد- مؤنث- بربنډوالے- بربنډتوب- لغړتوب- لوڅتیا-

لختۍ:(لخ-تۍ)اسم صفت- لښتی- ګهېدونکے- لولي- ایجړا- لشتي-

لختے:(لخ-تے)اسم- واحد- مذکر- پټیو ته د اُبو د تلو لار- لښتے- وړه نری والهٔ-

لخجه:(لخ-جه)اسم- واحد- مؤنث- د اور شغله- غرغنډه- لمبه- لخچه-

لخچه:(لخ-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لخجه-

لخړه:(ل-خهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- لوګے- لوخړه- دندوکار- لخزان-

لخک:(لہ-خک)اسم- واحد- مذکر- د دروازې چوڼ- چتے-

لخلخ:(لخ-لخ)اسم صفت- (۱)مانده- کمزورے- نرے- (۲- اسم- واحد- مذکر)لوړه- (۳)مغه اواز چې د حلق د وچوالي پهٔ وجه راوځي-

لخلخه:(لخ-لہ-خه)اسم- واحد- مؤنث- د څو خوشبودارو څیزونو مجموعه چې مریض ته د دماغو د تقویت پهٔ غرض وربویولے شي- سغوبے- جمع لخلخې-

لخم:(لہ-خم)اسم- واحد- مذکر- (۱)بې هډوکی غوښه- سخړه- بوټۍ- خړه-

(۲)غټې شونډې- پېړې شونډې-

لد :(لد )اسم- واحد- مذکر- لهٔ پړیو نه جوړ څادر چې دُ څاروی بار یا څټه پکښې تړلے شی- ترنګې- کورے- کرلس- ګرلسه- بار-

لد :(لد )اسم صفت- دښمن- دشمن-

لد :(لد )اسم- جمع- مذکر- د اس یا دُ خرهٔ خاشيهٔ- لړو-

لدره:(له-دهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- بار- پېټے- لړ-

لدونی :(له-دو-نی )اسم صفت- خداداد- هغه علم چې دُ زدکړې نه بغير د وحی یا الهام پهٔ ذریعه حاصل وی- الهام- وحی- سله- دم-

لړ :(لړ )اسم- واحد- مذکر- وګوری لدره-

لدر :(له-در )اسم صفت- د زړو څیزونو کاروبار کونکے- کباړی- کوډ فروش- (۲)اواره ګرد-

لهر :(له-هر )اسم- واحد- مذکر- پنډی- جوالی-

لهر :(له-هر )اسم صفت- کم عقل- بې علمه- ناپوهه- جاهل- لډو-

لډو :(له-ډو )اسم- واحد- مذکر- (۱)وګوری لد- (۲)یو قسم مټهائی-

لډو :(له-ډو )اسم صفت- وګوری لهر نمبر ۲-

لذا :(له-ذا )متعلق فعل- ځکه نو- دې د پاره- پس- ترو- لهٰذا-

لذات:(لذ-ذات)اسم- جمع- مذکر- د لذت جمع- خوندونه- مزې- ذائقې-

لذائذ :(له-ذا-ئذ )اسم- جمع- مذکر- دُ لذت جمع- خوندونه- لذتونه- مزې- ذائقې-

لذت:(لذ-ذت)اسم- واحد- مذکر- خوند- مزه- ذائقه-

لذيذ :(له-ذيذ )اسم صفت- خونده ور- مزېدار- خوش خوند-

لر :(لر )اسم صفت- مذکر- (۱)شکته- لاندې- کوز- ټيټ- (۲)ارزان- کم قيمته- (۲)سپک- د ادنی درجې- لاندې- پاتې- مؤنث لرد-

لر :(لر )اسم صفت- (۱)احمق- کم عقل- جاهل- (۲)صادق- صاف زړے- سپين نيتے-

لړ :(لړ )اسم- واحد- مذکر- لړی- سلسله- زنځير- کړی- لړ-

لر :(لر )اسم صفت- ناکام- ماتې خوړلے- مغلوب- شکست خورده- پهٔ شا شوے-

لر :(لر )علامت- د جمع علامت چې د مفرد سره پهٔ راتلو جمع جوړوی لکه اسپ نه اسپ لر-

لر اوښے:(لر-او-ښے)اسم- واحد- مذکر- د ښځې ورور- اوښے-

لربر :(لر-بر )متعلق فعل- لاندې باندې- کوز پاس- ښکته پورته- (۲)تهول- لهٔ ځیلمې-

لرز :(لرز )اسم- واحد- مذکر- لړزان- رېږ- رپ رپے- لرزه- رېږدېدنه- لرزش-

لرزان:(لر-زان)اسم- واحد- مذکر- لړزان- لرز- رېږ- رېږدېدنه- رپ رپے- لړځپ- لړسپ- لرزه- لرزش-

لرزش:(لر-زش)اسم- واحد- مذکر- وګوری لرز-

لرزول:(لر-زه-ول)مصدر متعدی- وګوری لړزول-

لرزولے:(لر-زه-وهٔ-لے)صفت مفعول- جمع لرزولی- مؤنث لرزولې- وګوری لړزول-

لرزون:(لر-زه-ون)حاصل مصدر- وګوری لړزول-

لرزونکے:(لر-زه-وون-کے)فاعل- جمع لرزونکی- مؤنث لرزونکې- وګوری لړزول-

لرزونګ:(لر-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګوری لړزول-

لرزونه:(لر-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری لړزول-

لرزه:(لر-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری لرز-

لرزېدل:(لر-زې-دل)مصدر لازم- وګوری لړزېدل-

لرزېدلے:(لر-زې-دهٔ-لے)صفت مفعول- جمع لرزېدلی- مؤنث لرزېدلې- وګوری لړزېدل-

لرزېدن:(لر-زې-دن)حاصل مصدر- وګوری لړزېدل-

لرزېدنګ:(لر-زې-دنګ)حاصل مصدر- وګوری لړزېدل-

لرزېدنه:(لر-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری لړزېدل-

لرزېدونکے:(لر-زې-دون-کے)فاعل- جمع لرزېدونکی- مؤنث لرزېدونکې- وګوری لړزېدل-

لرزېدهٔ:(لر-زې-دهٔ)حاصل مصدر از دُ ماضی استمراری دُ واحد غائب صيغه- وګوری لړزېدل-

لرشين:(لر-شين)اسم- واحد- مذکر- هغه ګند یا سوټې چې دُ څاروی پهٔ لړی کښې وی- لړشين- لړسن- لرشم-

لرغن:(لر-غن)اسم صفت- (۱)ناقلار- دُ خوب نهٔ کولو پهٔ وجه بې ارامه- (۲)وګوری لرغون-

لرغنے:(لر-غهٔ-نے)اسم صفت- وګوری لرغونے-

لرغون:(لر-غون)صفت- وړاندې- مخکښې- وړومبے-

لرغونتوب:(لر-غون-توب)اسم- واحد- مذکر- وړاندې والے- مخکښې کېدنه- لرغنوالے-

لرغون والے:(لر-غون-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګوری لرغونتوب-

لرغونی:(لر-غو-نی)اسم صفت- د لرغونے مؤنث- وګوری لرغونے-

لرغونے:(لر-غو-نے)اسم صفت- وړاندينے- مخکښينے- زوړ- وړومبنے- لرغنے- پخوانے-

لرغے:(لر-غے)اسم- واحد- مذکر- پخوا- زوړ وخت-

لرکبان:(لرک-بان)اسم صفت- وګوری لرکبه-

لرکبنه:(لرک-به-نه)اسم صفت- مؤنث- د لرکبه مؤنث- وګوری لرکبه-

لرکبه:(لرک-به)اسم صفت- مذکر- لرکی خرڅونکے- دُ لرکيو کار کونکے- لرکبان-

لرکی لوښی:(لر-کی-لو-ښی)اسم مرکب- وګوری لوښی لرکی-

لرکين:(لر-کين)اسم صفت- د لرکی- لهٔ لرکی جوړ- چوبی-

لرکی:(ل-ره-کی)اسم- واحد- مؤنث- لرکی- د غوز پوټکی- نرمی-

لرکے:(لَر-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ وَنو یا بوټو کلکه حصه چې د سوزولو او تعمیر دَ کارونو د پاره استعمالیږی- چوب- (۲)ذکر- غین- غینې- غړې-

لرل:(له-رل)مصدر متعدی- سره کېدل- پهٔ قبضه کښې کېدل- ساتل- شتهٔ کېدل- سره موجود کېدل-

لرلرے:(لر-له-رے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ دوره-

لرلے:(له-رهٔ-لے)صفت مفعول- وګورئ لرل-

لرمل:(لر-مل)اسم- واحد- مذکر- نمازیګر-

لرن:(له-رن)حاصل مصدر- وګورئ لرل-

لرنه:(له-رهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لرل-

لروکے:(له-رو-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ لور اسم تصغیر- وړوکے لور-

لرزل:(له-ره-زل)مصدر متعدی- ماتې ورکول- شکست ورکول- پهٔ شا تمبول- مغلوب کول-

لرون:(له-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ لرول-

لرونکے:(له-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لرول-

لرونکے:(له-رون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- (۱)وګورئ لرل- (۲- صفت)مالدار- دولتمند-

لرونه:(له-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لرول-

لرونه:(له-رو-نه)اسم- جمع- دَ لور جمع- وګورئ لور-

لره:(له-ره)حرف جار- دَ پاره- لهٔ خاطره- له-

لرې:(لهٔ-رې)اسم صفت- (۱)جُدا- بیرته- پهٔ ډېره فاصله- بعید- (۲)اخوا- ېږې ته- ورګ- پناه-

لرې:(لهٔ-رې)اسم صفت- خلاص- ازاد- بیرته- پرانستے- برخېره-

لرېدل:(له-رې-دل)مصدر لازم- ماتې خوړل- شکست خوړل- پهٔ شا تمبېدل-

لرېدن:(له-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لرېدل-

لرېدنګ:(له-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لرېدل-

لرېدنه:(له-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لرېدل-

لرېدونکے:(له-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لرېدونکي- مؤنث لرېدونکې- وګورئ لرېدل-

لرېدهٔ:(له-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لرېدل-

لرے:(لهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ خاروو معده- جمع لری-

لرے سوپرے:(لهٔ-رے-سو-پهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خاروی معده او کېدې دننه نور مختلف قسمه اندامونه- لرے، کولمې، پرپوس وغېره- لټر پټر- (۲)فضول او بېکاره څیز- جمع لری سوپری-

لړ:(لړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه تار چې ګرېوان پرې راټول وی- (۲)هار- امېل- لاړ- (۳)ول- کنځه- (۴)سلسله- قطار- (۵)دَ مچو غنې پرے-

لړاڅ څټاڅ:(له-ړاڅ-څه-ټاڅ)اسم مرکب- لړل څټل- (۱)ګوزاره- قوت لایموت- ساعت تېرے- (۲)اخلے پخلے-

لړبوس:(لړ-بوس)اسم صفت- وریت- کباب- ستی-

لړبیزن:(لړ-بې-زن)اسم صفت- بې قراره- ناقراره- ناقلاره- لالهانده-

لړڅپ:(لړ-څپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړزان-

لړزان:(لړ-زان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړزان-

لړزنده:(لړ-زن-ده)اسم صفت- رپېدونکے- رچېدونکے- پهٔ لړزان- لړزېدونکے- لړزېدونکے-

لړزول:(لړ-زه-ول)مصدر متعدی- (۱)رپول- رچول- لړزول- رېږدول- (۲)وارخطا کول- ویرول-

لړزولے:(لړ-زه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لړزول-

لړزون:(لړ-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لړزول-

لړزونکے:(لړ-زه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لړزول-

لړزونه:(لړ-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لړزول-

لړزه:(لړ-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لړزان-

لړزېدل:(لړ-زې-دل)مصدر لازم- (۱)رپېدل- رچېدل- لړزېدل- رېږدېدل- (۲)وارخطا کېدل- ویرېدل-

لړزېدلے:(لړ-زې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لړزېدل-

لړزېدن:(لړ-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لړزېدل-

لړزېدنه:(لړ-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لړزېدل-

لړزېدونکے:(لړ-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لړزېدل-

لړزېدهٔ:(لړ-زې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ لړزېدل-

لړسپ:(لړ-سپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړزان-

لړسن:(لړ-سن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړشین-

لړشم:(لړ-شم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړشین-

لړشوب:(لړ-شوب)اسم- واحد- مذکر- بېکاره نکلے- هغه پخکړے چې ابهٔ پکښې لهٔ ضرورته زیاتې وی-

لړشین:(لړ-شین)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړشین-

لړغېږنه:(لړ-غې-ږهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- نفاق- وتراوے-

لړل:(له-ړل)مصدر متعدی- (۱)کډول- ګډوډ کول- اړول راړول- ګنده کول- پهٔ خټو یا بل څیز ناولے کول- شوږ پوږ کول- ککړول- (۲)پهٔ څهٔ سازش کښې شریکول-

لړلے:(له-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لړل-

لړم:(له-ړم)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو لاشهٔ او زهر لرونکے خزنده- (۲)دَ اسمان دَ یوهٔ برج نامه- عقرب- (۳)شېطان- وران- شریر-

لړماچ:(لړ-ماچ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړمابن-

لړماس:(لړ-ماس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړمابن-

لړمابن:(لړ-مابن)اسم- واحد- مذکر- دَ زړهٔ پښتورګے- پرپوس- د اینې او

توری شریکه نامه- لوړماښ- لړماڅ- لړمون- لړماس- لړی کلمې وغېره-

لړمانۀ:(لړ-ما-نۀ)اسم- واحد- مذکر- لړمون- پۀ مغيره حالت کښې-

لړم بوټے:(له-ړم-بو-ټے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ساګ- لېونے- لېونی-

لړمون:(لړ-مون)اسم- واحد- مذکر- لړمين- (۱)دَ ګېډې دننه حصه- لړماښ- (۲)باطن- دننه- زړۀ- روح-

لړمون خوړينے:(لړ-مون-خوړي-نے)اسم صفت- (۱)هغه چې لړمون ئې خوړين وی- هغه چې دننه سخا وی- (۲)زاره چاودے- ډېر پۀ مر زړۀ او ناراستی سره کار کونکے-

لړمه:(له-ړه-مه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم سره دانه چې پۀ وجود راخيژی- جمع لړمې- (۲)د لړم مؤنث- ماده لړم-

لړمه:(له-ړه-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لړمې-

لړمين:(لړ-مين)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لړمون-

لړمې:(له-ړه-مې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)يو قسم چينچے چې شنۀ غنم خوری- پيشوګی- لړمه- (۲)دَ جولا (غنې) پۀ شان خو جولا نه غټه يوه خزنده-

لړن:(له-ړن)حاصل مصدر- وګورئ لړل-

لړنه:(له-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لړل-

لړو:(له-ړو)اسم صفت- اواره- فضول خرڅ- بې فائدې ګرځېدونکے- خوشے ګرځېدونکے- لړو چټو-

لړوچټو:(له-ړو-چه-ټو)اسم صفت- (۱)وګورئ لړو- (۲- اسم مرکب- مذکر)بې دردی سره خرڅ کونه- بې فائدې خرڅ کونه- بې قاعدې ژوند تېرونه-

لړوخ:(له-ړوخ)اسم- واحد- مذکر- دَ يو قسم وښو نامه- کارغۀ پښه- مرغی پښه-

لړومے:(له-ړو-مے)اسم صفت- چڼنې- خبېښلے- (۲)مشاق-

لړومے:(له-ړو-مے)اسم- واحد- مذکر- دَ اُور لړلو لرګے يا سيخ- اور لړونے-

لړومے:(له-ړو-مے)اسم صفت- نوم ورکے- ورک نومے- ګمنام-

لړومے:(له-ړو-مے)اسم صفت- (۱)تېز- تود- ګرم- (۲)متين- (۲)لېوال-

لړونکے:(له-ړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لړل-

لړونکے څټونکے:(له-ړون-کے-څه-ټون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- هغه څوک چې څۀ ګټی هغه څټی- فضول خرڅ- لړو څټو-

لړه:(له-ړه)اسم- واحد- مؤنث- خړه ګوره وربخ- دوند- ګرد-

لړه:(له-ړه)اسم- واحد- مؤنث- سلسله- قطار- لړ- لړی-

لړه:(له-ړه)اسم- واحد- مؤنث- لۀ وښو يا کپړې جوړه کاږېلی چې دَ منګی يا بل پيټی پۀ سر دَ راوړو پۀ وخت پۀ سر اېښودے شی- منجيله-

لړه:(له-ړه)اسم- واحد- مؤنث- پنډوس- غنډسکه- بال-

لړه:(له-ړه)اسم صفت- (۱)غرخېدلے- غرخولے شوے- پربوتے- ګوزار شوے- (۲)پورته- وچت-

لړه:(له-ړه)اسم- واحد- مؤنث- جنګ- شر- جګړه- فسات- فساد-

لړې ترې:(له-ړې-ته-ړې)اسم مرکب- شور- زوږ- غوغا- چغې سورې-

لړېڅے:(له-ړې-څے)اسم- واحد- مذکر- دَ دېګ لړلو غټ سيخ يا غټه څمڅی- اتام کش- طعام کش-

لړېده:(له-ړې-ده)اسم- واحد- مؤنث- پۀ انګار پخکړے شوی بانجيان يا باټينګړ- برته- بړته-

لړی:(له-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)دَ جينکو يوه لوبه- (۲)دَ پوزې يو پسول- چارګل-

لړی:(له-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- (۱)سلسله- قطار- لړ- (۲)امېل- هار- لړ- (۲)ضمن- باره- حقله-

لړی:(له-ړی)اسم- واحد- مؤنث- شنډی- بکيانړه- نباتاتی نوم ميليا ازېډيرک (MELIA AZEDARACH L)-

لزند:(له-زند)اسم صفت- پۀ وينو لړلے- ککړ- لژند-

لژ:(لژ)اسم صفت- وګورئ لږ-

لژکې:(لژ-کې)صفت/متعلق فعل- (۱)لږ شانې- لږچکې- لږ غُندې- لږکوټې- لوکوټې- لږکوټے- يو پوټے- لږ شان- لشکې- لښکې- (۲)لږۀ کښې- نژدې- قريباً-

لژند:(له-ژند)اسم صفت- وګورئ لزند-

لږ:(لږ)اسم صفت- کم- پوټے- معمولی- قليل-

لږ تر لږ:(لږ-تر-لږ)متعلق فعل- کم نه کم- لږ نه لږ- کم از کم-

لږتوب:(لږ-توب)اسم- واحد- مذکر- کم والے- لږوالے- قلت- کمے-

لږچکې:(لږ-چۀ-کې)متعلق فعل/صفت- وګورئ لژکې-

لږدول:(لږ-ده-ول)مصدر متعدی- بوج يا بار اچول- پېټے اچول-

لږ ډېر:(لږ-ډېر)اسم صفت- کم و زيات- څۀ نا څۀ- لږ-

لږ شانې:(لږ-شا-نې)متعلق فعل- وګورئ لژکې-

لږ غُندې:(لږ-غُن-دې)متعلق فعل- وګورئ لژکې-

لږکوټی:(لږ-کو-ټی)متعلق فعل- وګورئ لژکې-

لږکوټے:(لږ-کو-ټے)متعلق فعل- وګورئ لژکې-

لږکې:(لږ-کې)متعلق فعل- وګورئ لژکې-

لږوالے:(لږ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لږتوب-

لږوبه:(لۀ-ږو-به)اسم- واحد- مؤنث- دَ اُبو کمے- وُچوبه-

لږول:(لۀ-ږه-ول) مصدر متعدی- کمول- تخفيف راوستل- قلت راوستل- سپکول- لږوالے راوستل-

لږون:(لۀ-ږه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لږول-

لږونکے:(لۀ-ږه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لږول-

لږونه:(لۀ-ږه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لږول-

لږېدل:(لۀ-ږې-دل)مصدر لازم- کمېدل- تخفيف راتلل- سپکېدل- قلت راتلل- کمے راتلل- لږوالے راتلل-

لړېدن:(لۀ-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لړېدل-

لړېدنه:(لۀ-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لړېدل-

لړېدونکے:(لۀ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لړېدل-

لس:(لَس)اسم- مذکر- دَ انۀ (نهه) او يوولس تر مېنځه عدد- ۱۰- عشره-

لسان:(ل-سان)اسم- واحد- مذکر- ژبه- وينا- زبان-

لسانی:(ل-سا-نی)اسم صفت- دَ لسان سره متعلق- دَ ژبې متعلق- دَ زبان-

لسانيات:(ل-سا-نی-يات)اسم- مذکر- دَ ژبې دَ تاريخ علم- دَ ژبې دَ ابتدا، ارتقا او دَ تشکيل دَ قانون علم-

لسبه:(لَس-به)اسم صفت- وګورئ ګوګ-

لستوڼکے:(لَس-تو-ڼه-کے)اسم تصغير- دَ لستوڼی اسم تصغير- هغه خاص لستوڼے چې نانبايان يې دَ ډوډۍ پخولو پۀ وخت استعمالوی-

لستوڼے:(لَس-تو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- دَ قميص، کوټ وغېره هغه حصه چې لاس پکښې پټ وی- دَ قميص لۀ لاس نه چاپېره حصه- آستين- لستيني-

لستيني:(لس-تي-نی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لستوڼے-

لسټ:(لسټ)اسم- واحد- مذکر- دَ څيزونو دَ تفصيل فرد- فهرست- فهرس-

لسکی:(لَس-کی)اسم- واحد- مؤنث- دَ تاش هغه پاڼه چې لس خاله لری- دہله- دهله- دسه- لس خالی- .

لسکے:(لس-کے)اسم صفت- شوم- بخيل- کنجوس- اروا وړے- وړسترګے-

لسګون:(لَس-ګون)اسم- واحد- مذکر- دَ لسو روپيو لوټ-

لسم:(له-سم)اسم صفت- پۀ ترتيب کښې دَ انۀ او يوولسو تر مېنځه- پۀ نهم پسې نمبر لرونکے- مؤنث لسمه-

لسی:(له-سی)اسم- واحد- مؤنث- نرم شودۀ يا شلومبې چې اُبۀ پکښې ګډې کړے شوی وی-

لسے:(له-سے)اسم- واحد- مذکر- سړے- شخص- کَس-

لسيز:(له-سيز)اسم صفت- (۱)دَ لس سره متعلق- دَ لَسو- (۲)اسم- دُ لسمې درجې-

لش:(لَش)اسم صفت- ناراست- سست- لټ- لشتر- ناکاره- خوشے-

لش:(لُش)اسم صوت- سپی ته پۀ چا دَ حملې کولو اُواز- چا پسې دَ ورپسې کولو اُواز- اشاره-

لشپاک:(لش-پاک)اسم- واحد- مذکر- لۀ کانی يا کندوڼی نه جوړه غنډۍ پيتو چې واړۀ پرې لوبې کوی- کوندے- کچے- چلے- جتے- سل- موچی- موځی-

لشتر:(لش-تر)اسم صفت- وګورئ لش-

لشته:(لَش-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لښته- څوکه- نری څانګه- (۲)نری لوړه او ښائسته جينۍ-

لشتی:(لش-تی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لختی-

لشکر:(لش-کر)اسم- واحد- مذکر- لښکر- (۱)فوځ- سپاه- (۲)ګڼ خلق- ډېر خلق- دَ ډېرو خلقو ډله-

لشکه:(له-شه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاشۀ-

لشکې:(لش-کې)صفت/متعلق فعل- وګورئ لژکې-

لشل:(له-شل)مصدر متعدی- وګورئ لوشل سره د لوازماتو-

لشماتے:(لَش-ما-تے)اسم- واحد- مذکر- دَ مائع څيز معمولی شان مقدار چې پۀ څۀ څيز پورې کړے شی-

لشمکه:(لش-مه-که)اسم صفت- مؤنث- ورانه او چالاکه- نخره بازه- لګ لکی- لشمکی- شوخه-

لشمکی:(لش-مه-کی)اسم صفت- مؤنث- وګورئ لشمکه-

لشن:(ل-شن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاشۀ-

لشوړه:(له-شو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاشوړه-

لشه:(له-شه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاشۀ-

لشه دار:(له-شه-دار)اسم صفت- لشه لرونکے-

لښته:(لَښ-ته)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لشته-

لښتی:(لَښ-تی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لختی-

لښتی:(لښ-تی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ غوړونو يو پسول- والی- (۲)دَ يو قسم بوټی نرے ډکے چې ماشومانو ته لۀ بدو سترګو يا بد غړه دَ بچ کېدلو پۀ غرض پۀ غاړه کښې اچولے شی-

لښتے:(لَښ-تے)اسم- واحد- مذکر- بادام- غروښتے- ورلښتے- الښتے- لولښتے-

لښتے:(لَښ-تے)اسم- واحد- مذکر- فصل يا پټيو ته دَ اُبو دَ وروستو لار- لختے- وړوکې نری ولہ-

لښتے کنډ:(لښ-تے- کنډ)اسم- واحد- مذکر- دَ بادام دَ ونې کنډ يا چيړ-

لښکر:(لَښ-کر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لشکر-

لښکری:(لښ-که-ری)اسم صفت- دَ لښکر سره نسبت لرونکے- فوځی- سپائی- دَ لښکر غړے- جمع لښکريان-

لښکه:(له-ښه-که)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لاشۀ-

لښکې:(لښ-کې)صفت/متعلق فعل- وګورئ لژکې-

لښکے:(لښ-کے)اسم- واحد- مذکر- ياداشت- ياد لرنه-

لښکے:(لښ-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ رګ وهلو نشتر-

لښل:(لۀ-ښل)مصدر متعدی- (۱)تلل- سفر کول- کوچ کول- يو ځائې نه بل ځائې ته تلل- (۲)کوچول- بارول- پۀ سفر روانول-

لښلے:(لۀ-ښۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- بار کړے شوے- کوچولے- پۀ سفر روان کړے شوے-

لښن:(لۀ-ښن)حاصل مصدر- وګورئ لښل-

لښنه:(لۀ-ښۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لښل-

لښونکے:(لۀ-ښون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لښل-

لښونے:(لۀ-ښو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لښل-

لښه:(ل-ښه)اسم- واحد- مؤنث- عادت- خوئ- خصلت- لوښه-

ئ" (ځی-رل)، ې"(مې-ره-ول)، ی"(پيا-لی)، ے"(تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

لص:(لص)اسم صفت- غلا کونکے- غل- سارق-

لطافت:(لە-طا-فت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښۀ والے- خوبي- (۲)پاکوالے- پاکي- پاکيزګي- (۳)پوست والے- نرمي- (۴)نزاکت- (۵)ښائست-

لطائف:(لە-طا-ئف)اسم جمع- د لطيفه جمع- وګورئ لطيفه-

لطف:(لُطف)اسم- واحد- مذکر- (۱)عنايت- پيرزو- مهرباني- (۲)ښۀ والے- خوبي- (۳)پوست والے- نرمي- (۴)مزه- خوند- لذت-

لطفاً:(لُط-فن)متعلق فعل- په مهرباني- ازراه کرم- پۀ مهرباني سره-

لطيف:(لە-طيف)اسم صفت- (۱)نرم- نازک- پوست- (۲)صفا- رون- (۳)پاک پاکيزه- (۴)خوندناک- خونده ور- مزېدار-

لطيف الطبع:(لە-طي-فط-طە-بع)اسم صفت- ښۀ خوئ لرونکے- خوشحال طبع-

لطيفه:(لە-طي-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ښۀ څيز- (۲)د خندا خبره- دلچسپه خبره- شګوفه- (۳)ناآشنا- عجيبه-

لعاب:(ل-عاب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لاړه-

لعل:(لعل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لال-

لعلي:(لع-لي)اسم- واحد- مذکر- يو قسم سُوربخن رنګ چې نقاشان او مصوران ي استعمالوي-

لعنت:(لع-نت)اسم- واحد- مذکر- ملامت کونه- رټنه- غندنه- بد وئېنه-

لعنت ملامت:(لع-نت-مه-لا-مت)اسم مرکب- رټنه- غندنه- بدرد-

لعنتي:(لع-نه-تي)اسم صفت- هغه چې لعنت پرې وونېلے شي- رټلے شوے- مردود- لعين- (م- عربي)-

لعوق:(لە-عوق)اسم- واحد- مذکر- (۱)چکني- چټني- چکني- الوک- (۲)هغه دارو چې ډېر ټينګ وي او څټلے شي-

لعين:(لع-عين)اسم صفت- وګورئ لعنتي-

لغ:(لغ)اسم صفت- (۱)هغه څيز چې مضبوط نۀ وي- نښتے- (۲)هغه سړے چې د پردي خبره پټه نۀ شي ساتلے- (۳)سخته بنجره (زمکه)-

لغات:(ل-غات)اسم- جمع- مذکر- د لغت جمع- (۱)الفاظ- ژبې- (۲)هغه کتاب چې پکښې د يوې ژبې الفاظ او د هغو معنې ليکلے شوې وي- فرهنګ- ډکشنري- (م- عربي)-

لغاز:(ل-غاز)اسم- واحد- مذکر- مسخرې- خندا- مذاق- ټوقې-

لغازي:(ل-غا-زي)اسم صفت- مسخرې کونکے- مذاق کونکے- ټوقې کونکے- چا پورې خندا کونکے-

لغام:(ل-غام)اسم- واحد- مذکر- واګې- قېزې- لګام- عنان-

لغت:(ل-غت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ژبه- لفظ- (۲)هغه کتاب چې پکښې الفاظ او د هغو معنې وي- فرهنګ- ډکشنري- وګورئ لغات-

لغته:(لە-غه-ته)اسم- واحد- مؤنث- لته- لکته- ډته- پۀ پښه ګوذار کونه- لکد-

لغړ:(لە-غړ)اسم صفت- (۱)بربنډ- لوڅ- (۲)بې حيا- بې شرم-

لغړ:(لە-غړ)اسم- واحد- مذکر- لنډوزے- شاهين-

لغړتوب:(لە-غړ-توب)اسم- واحد- مذکر- لغړتيا- (۱)بربنډتوب- بربنډوالے- لوڅ توب- (۲)بې حيائي- بې شرمي-

لغړتيا:(لە-غړ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لغړتوب-

لغړول:(لە-غۀ-ړه-ول)مصدر متعدي- (۱)بربنډول- لوڅول- ښکاره کول- (۲)شرمول- بې حيا کول-

لغړول:(لَغ-ړه-وَل)مصدر متعدي- توغلول- پۀ خاورو کښې ړېږې پۀ ړېږې اړول- رغړول- لوغړول-

لغړون:(لە-غۀ-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لغړول-

لغړون:(لَغ-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لغړول-

لغړونکے:(لە-غۀ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغړول-

لغړونکے:(لَغ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغړول-

لغړونګ:(لە-غۀ-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لغړول-

لغړونګ:(لَغ-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لغړول-

لغړونه:(لە-غۀ-ړه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغړول-

لغړونه:(لَغ-ړه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغړول-

لغړه:(لە-غۀ-ړه)اسم صفت- د لغړ مؤنث- وګورئ لغړ-

لغړېدل:(لە-غۀ-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)بربنډېدل- لوڅېدل- ښکاره کېدل- (۲)شرمېدل- بې حيا کېدل-

لغړېدل:(لَغ-ړې-دل)مصدر لازم- توغلېدل- لغښتل- پۀ زمکه يا خاورو کښې ړېږې پۀ ړېږې اوړېدل- رغښتل- لوغړېدل-

لغړېدلے:(لَغ-ړې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدن:(لە-غۀ-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدن:(لَغ-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدنګ:(لە-غۀ-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدنګ:(لَغ-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدنه:(لە-غۀ-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدنه:(لَغ-ړې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدونکے:(لە-غۀ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدونکے:(لَغ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغړېدل-

لغړېدۀ:(لە-غۀ-ړې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ لغړېدل-

لغړېدۀ:(لَغ-ړې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ لغړېدل-

لغز:(لە-غز)اسم- واحد- مذکر- خرابوالے- خامي- د چا خامي بيانونه-

لغز:(لُغز)اسم- واحد- مذکر- د مرې کړه وړه سوړه- (م- عربي)-

لغزش:(لغ-زش)اسم- واحد- مذکر- (۱)پښې خوئېدنه- پرېوتو ته نژدې کېدنه- (۲)خطا- غلطي- ګمراهي-

لغزول:(لغ-زه-ول)مصدر متعدي- (۱)خويول- غرخول- پرېوتو ته جوړول-

(۲)خطا کول- غلطول- ګمراه کول-

لغزولے:(لغ-زه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لغزول-

لغزون:(لغ-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لغزول-

لغزونکے:(لغ-زه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغزول-

لغزونګ:(لغ-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لغزول-

لغزونه:(لغ-زه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغزول-

لغزېدل:(لغ-زې-دل)مصدر لازم- (۱)خوښېدل- غرځېدو ته جوړېدل- (۲)خطا کېدل- غلطېدل- ګمراه کېدل-

لغزېدن:(لغ-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لغزېدل-

لغزېدنګ:(لغ-زې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لغزېدل-

لغزېدنه:(لغ-زې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لغزېدل-

لغزېدونکے:(لغ-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لغزېدل-

لغزېدۀ:(لغ-زې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ لغزېدل-

لغښتل:(لغښ-تل)مصدر لازم- وګورئ لغزېدل-

لغم:(له-غم)اسم- واحد- مذکر- نغم- (۱)هغه سُورے چې د څۀ څيز د کمزوری کولو په غرض د هغۀ په بېخ يا بنياد کښې وکړے شی- سرنګ- (۲)اکنډر- هغه سورے چې د غلا په غرض په دېوال کښې وکړے شی- (۳)د چا خلاف پټ کار- سازش- (۴)کوشش- لټون-

لغو:(لغ-وۀ)اسم صفت- پوچ- بې فائدې- بې هُوده-

لغونی:(له-غو-نی)اسم- واحد- مؤنث- کټوی- له خاورو جوړ د پخلی لوښے- کټی-

لغونے:(له-غو-نے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم غرنيز بوټے-

لغوی:(ل-غه-وی)صفت نسبتی- لغت سره منسوب- لفظی- د لغت- د ژبې-

لغويات:(لغ-وی-يات)اسم- جمع- مؤنث- د لغويت جمع- وګورئ لغويت-

لغويت:(لغ-وی-يت)اسم- واحد- مذکر- فضول او پوچه خبره- بې هوده عمل او حرکت-

لف:(لف)اسم صفت- تکيه شوے- شامل-

لفاظ:(له-فاظ)اسم صفت- (۱)ښۀ الفاظ ويونکے- ښې خبرې کونکے- خوش بيان- (۲)خبرلوڅ- ټرټو- ډېرې خبرې کونکے- ټرټن-

لفاظی:(له-فا-ظی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)خوش بيانی- ښۀ الفاظ استعمالونه- (۲)ډېرې خبرې کونه- ټرټن توب-

لفافه:(ل-فا-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پاسنے پوټ- خول- (۲)د کاغذ غلاف چې خط پکښې بندولے شی- (۳)ظاهری سامان- د خان ښودنې سامان- (۴)د مړی لۀ وجوده راتاوونوکې سپينه کپړه-

لفټ:(لفټ)اسم- واحد- مذکر- هغه مشينی څانګو چې پکښې خلق د محل له يوۀ چټه بل ته خيژی راکوزيږی- (م- انګريزی)-

لفټين:(لف-ټين)اسم- واحد- مذکر- د فوځ يو افسر- عهده دار-

لفچ:(لفچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بې مېږکی غوښه- (۲)شونډې-

لفظ:(لفظ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کلمه- لۀ خُلې راوتونکې خبره- (۲)ټکے- توری-

لفظاً:(لف-ظن)متعلق فعل- په لفظ سره- د لفظ په اعتبار سره-

لفظی:(لف-ظی)صفت نسبتی- (۱)د لفظ سره منسوب- (۲)اصلی- حقيقی- لغوی-

لفنګ:(له-فنګ)اسم صفت- (۱)لوچه- بدعمله- لوفر- بدمعاش- (۲)هغه څوک چې جيب ئې خالی وی- پېسې نۀ لرونکے-

لف و نشر:(لف-و-نه-شر)اسم مرکب- د شاعری هغه صنعت چې پکښې په شعر کښې په دوېمه مصرعه کښې د وړومبۍ مصرعې د ذکر شويو څيزونو مناسبات راوړے شی-

لفيق:(له-فيق)اسم- واحد- مذکر- ارم شوے څيز- نښتے يا تاو شوے څيز-

لق:(لق)اسم- واحد- مذکر- (۱)بق ستړکے سړے- هغه سړے چې سترګې ئې لۀ حده زياتې بهر راوتې وی- (۲)د درد تکليف- څړيکه- (۳)دوکه- فرېب-

لقا:(لق-قا)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم کونتره چې اکثر ئې څټ د لکی سره جُخت نيولے وی- (م- عربی)-

لقا:(ل-قا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ديدن- ملاقات- ليدنه- (۲)مخ- څهره- شکل- (م- عربی)-

لقاح:(له-قاح)اسم صفت- بلاربه- حامله- ډکه- هغه چې بچے ئې په ګېډه وی- (م- عربی)-

لقب:(له-قب)اسم- واحد- مذکر- د څۀ خاص صفت په وجه اېښودلے شوې نامه- جمع لقبونه، القاب- (م- عربی)-

لقطه:(لق-طه)اسم- واحد- مؤنث- په لار کښې پروت څيز چې راوُچت کړے شی- (م- عربی)-

لقلق:(لق-لق)اسم- واحد- مذکر- د ابو يو مارغۀ- لک لک- قاز- سارس- لک لک-

لقلقه:(لق-له-قه)اسم- واحد- مؤنث- زوردار اواز- سخت اواز- لۀ حلق نه په زور سره راوتونکے اواز- (۲)رعب دار اواز- د حوصلې اواز-

لقمان:(لق-مان)اسم- واحد- مذکر- (۱)د يو مشهور حکيم نامه- (۲)- صفت اشيار- تجربه کار- هوښيار-

لقمه:(لق-مه)اسم- واحد- مؤنث- نمری- نوړی- قپ- نواله- کپه- نوړی-

لق و دق:(لق-و-دق)اسم مرکب- بيابان- صحرا- وړانه- خوشے ځای-

لقوه:(لق-وه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم بيماری چې خُله پکښې کوږيږی- (م- عربی)-

لقيط:(ل-قيط)اسم صفت- حرامی- د زنا په وجه پيدا شوے د نامعلوم پلار خوی-

لقيه:(لق-يه)اسم- واحد- مؤنث- ملاقات- سره ليدنه-

"ئ" (ځی-رل)، "ی" (مې-ره-ول)، "ی" (پيا-لی)، "ے" (تن-دی) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

لک:(لک)اسم- واحد- مذکر- (۱)نښغ- زیچت- ولاړ- (۲)سل زره- لاک- (۳)هغه داغ چې د سوزېدو په وجه په بدن پاتې شي- (۴)ورانې خبرې- بکواس- (۵)د سپي غپارے، غپا- (۶- صفت)بې وقوف- کم عقل- (۷)بې هنره- (۸)زړې جامې- زوړ لباس-

لک:(لک)اسم- واحد- مذکر- (۱)شغله- لمبه- (۲)لوک- روغن- وارنش-

لکات:(لـه-کات)اسم صفت- (۱)بوږی- (۲)کمینه- رذیل- کم اصل- (۳- اسم)بې اختیاره حرکت- ټکان- (م- فارسی)-

لک پتي:(لک-په-تي)اسم صفت- د لکونو روپیو خاوند- ډېر مالدار- لکي-

لک څک:(لک-څک)صفت مرکب- بېخي نېغ- بوڅ- بالکل لک- لکه ږکه-

لکچر:(لک-چر)اسم- واحد- مذکر- (۱)سبق- درس- (۲)وعظ- (۳)تقریر- زباني تقریر- (م- انګریزی)-

لکچرار:(لک-چه-رار)اسم صفت- لکچرر- (۱)درس ورکونکے- مدرس- سبق ښودونکے- (۲)واعظ- وعظ کونکے- (۳)تقریر کونکے-

لکچرر:(لک-چه-رر)اسم صفت- وګورئ لکچرار-

لکچررتوب:(لک-چه-رر-توب)اسم- واحد- مذکر- د لکچرار پېشه- د لکچرار کار- درس ورکونه- لکچرري-

لکړ:(له-کړ)اسم- واحد/جمع- مذکر- ټانکر- بې پاڼو ټانټه- ټانکر- هغه ټانټه چې څاروے ترې سر او پاڼې وخوري او صرف تنه پاتې شي-

لکړه:(له-که-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نری وچه ونه- (۲)چوکه- لنډی لښته- (۳)د جنډې ورده ډنډه- جمع لکړې-

لکړے:(له-که-ړے)صفت- نرے لوړ سړے- مانده او لوړ- جمع لکړي-

لکشوه:(له-که-شه-وه)اسم- واحد- مؤنث- هوسی- ترکشه- لکه ښویه-

لک لک:(لک-لک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لقلق-

لکلمے:(له-که-له-مے)اسم- واحد- مذکر- د کناټو د منځ هډوکے- هغه هډوکے چې د مقعد د پاسه ختم شوے وي- لکمونے-

لکمونے:(له-که-مو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لکلمے-

لکنت:(لک-نت)اسم- واحد- مذکر- ترتړی توب- په ښتې ژبه خبرې کونه-

لکوبوک:(لک-و-بوک)اسم صفت- لوړ ژوړ- ښکته پورته- ناهوار-

لکوټی:(ل-کو-ټی)اسم صفت- لږ شان- په لږ مقدار کښې- لږ غندې-

لکوړے:(له-کو-ړے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مېوه-

لکول:(له-که-ول)مصدر متعدی- نېغول- ودرول- نصب کول- نېغ ودرول-

لکون:(له-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ لکول-

لکونکے:(له-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لکول-

لکونګ:(له-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لکول-

لکونه:(له-که-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ لکول-

لکه:(له-که)حرف عطف- غندې- په شان-

لکه:(له-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ټاپ- چاپ- ټوپله- ټپله- (۲)عیب- داغ- تور- نوغے- (م- فارسی)-

لکه دار:(له-که-دار)اسم صفت- داغدار- معیوب- عیبناک- نوغژن-

لکه ږکه:(له-که-ږه-که)صفت مرکب- وګورئ لک څک-

لکي:(له-کي)اسم صفت- وګورئ لک پتي-

لکي مار:(له-کی-مار)اسم صفت- وګورئ لکیور-

لکیور:(له-کی-ور)اسم صفت- لکي لرونکے- لکي مار- لکي وال- هغه چې لکي ورپورې وي- مؤنث لکیوره-

لکېدل:(له-کې-دل)مصدر لازم- وچتېدل- نېغ ودرېدل- ولاړېدل- نصب کېدل-

لکېدن:(له-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لکېدل-

لکېدنګ:(له-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لکېدل-

لکېدنه:(له-کې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ لکېدل-

لکېدونکے:(له-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لکېدل-

لکېده:(له-کې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ لکېدل-

لکۍ:(له-کۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د ښناورو د ړونګې د پاسه د بدن نه تېرے هغه وروستے حصه چې عام طور سره پرې ښناور له ښانه مچان شړي- (۲)د مارغانو وروستني وردې ښپې- (۳)وروستۍ حصه- (۴)انجام- (۵)پیچلک-

لکي وال:(له-کي-وال)اسم صفت- وګورئ لکیور- (افغانستان)-

لګ:(لګ)اسم- واحد- مذکر- خرڅ- خرچ- لګښت- صرف-

لګام:(له-ګام)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لغام-

لګاز:(له-ګاز)اسم- واحد- مذکر- نغم- ګېل- ګوذار- ضرب-

لګاوو:(له-ګا-وو)اسم صفت- (۱)خرڅ کونکے- لګونکے- (۲)جګړه جوړونکے- فتنه راولاړونکے- فتنه پرداز-

لګاوول:(له-ګا-وه-ول)مصدر متعدی- وهل- ټکول- ډبول- سخت سخت وهل-

لګاوون:(له-ګا-وه-ون)حاصل مصدر- وګورئ لګاوول-

لګاوونګ:(له-ګا-وه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لګاوول-

لګاوونه:(له-ګا-وه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ لګاوول-

لګاوونکے:(له-ګا-وه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لګاوول-

لګاوه:(له-ګا-وه)اسم- واحد- مؤنث- خرڅ کونه- لګونه-

لګاوه:(له-ګا-وه)اسم صفت- فاحشه- کنجره- بدکاره- خرابه ښځه-

لګاوېدل:(له-ګا-وې-دل)مصدر لازم- وهلے کېدل- وهل خوړل- ډبېدل-

لګاوېدن:(له-ګا-وې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لګاوېدل-

لګاوېدنګ:(له-ګا-وې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لګاوېدل-

لګاوېدنه:(له-ګا-وې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ لګاوېدل-

لګاوېدونکے:(له-ګا-وې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لګاوېدل-

لګاوېده:(له-ګا-وې-ده)حاصل مصدر- وګورئ لګاوېدل-

لګت:(له-ګت)اسم- واحد- مذکر- لګښت- خرڅ- مصرف- لګد-

لګته:(له-ګه-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لغته-

لګد:(له-ګد)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لغته- (م- فارسی)-

لګد:(له-ګد)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لګت-

لګړ:(له-ګړ)اسم- واحد- مذکر- د سېلاب لاره- خوړ- د سېلابی اُبو لاره-

لګړ:(له-ګړ)اسم- واحد- مذکر- د شکری د قسم یو ښکاری مارغۀ-

لګړه:(له-ګۀ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- د یو مارغۀ نامه- بادخور- بادخورک-

لګښت:(له-ګښت)اسم- واحد- مذکر- خرڅ- لګت- مصرف- لګد-

لک لک:(لک-لک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لقلق-

لګن:(له-ګن)اسم- واحد- مذکر- (۱)د وړو اخښلو لوښے- ښانک- (۲)لاس وينځونکے- چیلمچی- (۲)شمع دان- د شمعو بلولو لوښے-

لګن:(له-ګن)اسم- واحد- مذکر- (۱)تعلق- نسبت- (۲)شوق- مینه- عشق- محبت- (۲)ساعت کړی- وخت- (۴)زادۀ- د وادۀ نېټه ایښودنه- د وادۀ د تاریخ او وخت تقرری- (۵)د نمر د حمل پۀ بُرج کښې د تلو ساعت-

لګول:(له-ګه-وَل)مصدر متعدی- (۱)انښلول- سره یوځایْ کول- (۲)سمول- ترتیب سره اېښودل- (۲)خرڅ کول- صرف کول- (۴)بلول- لمبه کول- (۵)مقررول- (۶)الکیا کول- اخته کول- (۷)حاملول- بلاربول- (۸)نصب کول- (۹)وړپورې کول- منسوب کول- تړل- پۀ داړ اېښودل- (۱۰)نال کول- کرل- (۱۱)وړپسې کول-

لګولے:(له-ګه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لګول-

لګون:(له-ګه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لګول-

لګونکے:(له-ګه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لګول-

لګونګ:(له-ګه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لګول-

لګونه:(له-ګه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لګول-

لګونه اچونه:(له-ګه-وۀ-نه-ا-چه-وۀ-نه)اسم مرکب- ګړوړ کونه- لاندې باندې کونه- اخوا دېخوا کونه- بې ځایه کونه-

لګونے:(له-ګه-وو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لګول-

لګه درګه:(له-ګه-دَر-ګه)اسم صوت- مؤنث- (۱)د ګېنو کسانو پۀ یوځایْ د منډې وهلو اواز- (۲)منډه تړړه- کوشش- (اسم)-

لګیا:(لګ-یا)اسم صفت- اخته- اړم- مصروف- مشغول-

لګېدل:(له-ګې-دَل)مصدر لازم- (۱)خپلو کښې سره جنګېدل- (۲)بلېدل- لمبه کېدل- (۲)نښتل- سره یوځایْ کېدل- (۴)خرڅ کېدل- صرف کېدل- (۵)مقررېدل- (۶)ګولۍ خوړل- ګوذار خوړل- زخم خوړل- (۷)حامله کېدل- بلاربېدل- (۸)فاعل کېدل- (۹)اړمېدل- اخته کېدل- لګیا کېدل- (۱۰)اثر انداز کېدل- (۱۱)موافقت پېدا کېدل- (۱۲)نصب کېدل- (۱۳)سمېدل- ترتیب سره اېښودلے کېدل- (۱۴)پسې کېدل- (۱۵)منسوب کېدل- تړلے کېدل- (۱۶)پۀ داړ اېښودلے کېدل- (۱۷)نال کېدل- کرلے کېدل- (۱۸)زرغُنېدل- شین کېدل-

لګېدلے:(له-ګې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لګېدل-

لګېدن:(له-ګې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ لګېدل-

لګېدنګ:(له-ګې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لګېدل-

لګېدنه:(له-ګې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لګېدل-

لګېدونکے:(له-ګې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لګېدل-

لګېدۀ:(له-ګې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ لګېدل-

لل:(لل)اسم- واحد- مذکر- (۱)زور- طاقت- (۲)لوظ- قول-

لل:(لل)اسم صفت- هغه څوک چې خبرې نۀ شی کولے- ګونګ- ګونګے-

لل:(لل)مصدر متروک- للل- لودل- لېیل- د کول، لرل پۀ معنو کښې کلاسیکی لیکونکیو استعمال کړے دے- عام طور سره دغه دور کښې د ګواهی، شهادت، سلام سره دا مصدر او د دې مشتقه صیغه (فعل حال) لی" استعمال شوې ده- د مثال د پاره د خوشحال بابا هغه غزل ته رجوع وکړئ چې مطلع ې دا ده......

چې امید پۀ دا ایام لی

دا اُمید ې ناتمام لی

لل بل:(لل-بل)اسم صفت- حېران- وارخطا- پرېشان- لل ګل-

لل ګل:(لل-ګل)اسم صفت- وګورئ لل بل-

للل:(له-لل)مصدر- وګورئ لل- (متروک)-

للمه:(لل-مه)اسم- واحد- مؤنث- بارانی زمکه- هغه زمکه چې د باران پۀ اُبو اُبۀ کیږی- للمی-

للمی:(لل-مي)اسم صفت- (۱)بارانی فصل- د للمې فصل- (۲)هغه څوک چې ګوزاره ې د للمې پۀ زمکه وی-

للمی:(لل-مي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ للمه-

للو:(له-لو)کلمه- یوه کلمه چې مور ې بچی ته د وُدۀ کولو پۀ غرض وائی-

للو:(له-لو)اسم صفت- احمق- کم عقل- بېوقوف-

للو پتو:(له-لو-په-تو)اسم- مؤنث- (۱)خوشامنده- چاپلوسی- (۲)پۀ مشکله ګوزاره کونه-

للوز:(له-لوز)اسم- واحد- مذکر- د مارغانو اواز- د مارغانو چغار-

للو للو:(له-لو-له-لو)کلمه مرکب- وګورئ للو-

للون:(له-لون)اسم- واحد- مذکر- (۱)فصل رېبنه- فصل لو کونه- (۲)الۀ فصل نه وابنۀ وېستنه- فصل رنګے کونه، صفا کونه- (۲)کوشش-

للون:(له-لون)اسم- واحد- مذکر- وېنا- بیان-

لله:(لۀ-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وعده- ژبه- لفظ- (۲- صفت)کم عقل- بې وقوف- احمق-

للی:(لۀ-لی)اسم- جمع- مذکر- د پوزې غلیظه ماده- ګرېنګ- خنی-

للین:(له-لین)اسم- واحد- مذکر- وګورئ للون نمبر ۱-

للېدل:(له-لې-دَل)مصدر لازم- (۱)ګونګے کېدل- ژبه بندېدل- (۲)وارخطا کېدل- پرېشانه کېدل- (۲)بېر پۀ وړو حرکت کول- ایله سر ړقول-

للېدن:(له-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ للېدل-

للېدنګ:(له-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ للېدل-
للېدنه:(له-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ للېدل-
للېدونکے:(له-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ للېدل-
للېدهٔ:(له-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ للېدل-
للۍ:(له-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- د لولۍ مخفف- وګورئ لولۍ-
لم:(لم/لم)اسم- واحد- مذکر- د کټ وروستنی حصه- د کټ پلنه لکۍ-
لم:(لم)حرف نفی- نه- نهٔ- د نشتوالی پهٔ غرض وئېلے شی- (م- عربی)-
لم:(لم)اسم صفت- (۱)ناراسته- سست- لټ- (۲)وړد وړد غربدلے- ملاست-
لم:(لم)اسم- واحد- مذکر- (۱)اصلیت- حقیقت- د خبرې جرړه- د خبرې بیخ- (۲)سبب- سوب- وجه- (۳)الزام- بهتان- تهمت- تور- (م- عربی)-
لم:(لم)اسم- واحد- مذکر- لار- لاره- (م- فارسی)-
لماړی ستن:(لما-ړی-ستن)اسم مرکب- نماړی ستن- د بړستنو ګنډلو ستن-
لماړے:(لما-ړے)اسم- واحد- مذکر- سرسری ګنډ- غټ غټ ګنډ- نماړے- جمع لماړی-
لماست:(لماست)اسم صفت- ملاست- نماست- (۱)وړد وړد غځېدلے یا پرېوتے اچولے (انسان یا حیوان)- (۲)وِدهٔ- بیدهٔ- (۲)کوروالے کونکے- هم بستر-
لماستل:(لماس-تل)مصدر لازم- څملاستل- ملاستل- نماستل- (۱)وړد وړد غځېدل- پرېوتے اچول- (۲)کوروالے کول- جماع کول- هم بستر کېدل-
لماستلے:(لماس-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لماستل-
لماستن:(لماس-تن)حاصل مصدر- وګورئ لماستل-
لماستنه:(لماس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لماستل-
لماستونکے:(لماس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لماستل-
لماسته:(لماس-ته)اسم- واحد- مؤنث- لماستے- نماستے- (۱)څملاستنه- ملاسته- ودهٔ کېدنه- (۲)کوروالے- جماع- هم بستری- (۲- صفت)د نماست مؤنث- وګورئ لماست-
لماشام:(لما-شام)اسم- واحد- مذکر- نماښام- ماښام- د نمازیګر او نماسختن تر مېنځه وخت- لهٔ نمر پرېوتهٔ نه پس وخت-
لماشوم:(لما-شوم)اسم صفت- وګورئ ماشوم-
لماښام:(لما-ښام)اسم- واحد- مذکر- پهٔ نمر پرېوتهٔ پسې وخت- د نمازیګر او نماسختن تر مېنځه وخت- ماښام- نماښام- لماشام- لماښامے-
لماښامے:(لما-ښا-مے)صفت نسبتی- (۱)د لماښام سره منسوب- (۲- اسم)وګورئ لماښام-
لمانځل:(لمان-ځل)مصدر متعدی- نمانځل- (۱)عزت ورکول- لونی ورکول- عزت افزائی ورکول- (۲)پالل- ساتل- (۳)نمونځ کول- لمنځل-
لمانځلے:(لمان-ځهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لمانځل-
لمانځن:(لمان-ځن)حاصل مصدر- وګورئ لمانځل-
لمانځنه:(لمان-ځهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمانځل-
لمانځونکے:(لمان-ځون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لمانځل-
لمانځه:(لمان-ځه)اسم- واحد- مؤنث- د ژرندې د پل محور- د ژرندې د پل د مېنځ موږے- تیرک- جمع لمانځې-
لمانځی:(لمان-ځی)اسم صفت- پاک- نمانځی- د نمانځهٔ قابل-
لمبا:(لم-با)اسم- واحد- مؤنث- غسل- ځان پاکونه- لامبا- پهٔ بدن اُبهٔ تېرونه-
لمبر:(لم-بر)اسم- واحد- مذکر- نمبر- (۱)درجه- (۲)منصب- مرتبه- عهده- (۳)وار- نوبت- پېره- (۴)شمار- شمېره- تعداد-
لمبړ:(لم-بړ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د لومبړې مذکر- لومبړ- (۲- صفت)لوړ او کم عقل سړے- احمق- لمبو-
لمبل:(لم-بل)مصدر لازم- غسل کول- پهٔ بدن اُبهٔ تېرول- لامبل-
لمبن:(لم-بن)حاصل مصدر- وګورئ لمبل-
لمبنه:(لم-بهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمبل-
لمبو:(لم-بو)اسم صفت- لهٔ حده زیات لوړ او احمق- لامبو- لمبړ-
لمبول:(لم-به-ول)مصدر متعدی- غسل ورکول- پاکول- د بل پهٔ بدن اُبهٔ تېرول-
لمبولے:(لم-به-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لمبول-
لمبون:(لم-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ لمبول-
لمبونکے:(لم-به-وون-کے)اسم فاعل- جمع لمبونکی- مؤنث لمبونکې- وګورئ لمبول-
لمبونګ:(لم-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لمبول-
لمبونه:(لم-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمبول-
لمبه:(لم-به)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د اور شغله- غرغنډه- (۲)تاؤ- ګرمی- (۳)یو قسم مرض چې پکښې د وجود د تاؤ پهٔ وجه پهٔ وجود سرې سرې دانې راخیژی- (۴)د یوې مرغۍ نامه-
لمبېدل:(لم-بې-دل)مصدر لازم- غسل کول- پهٔ اُبو ځان پاکول- پهٔ بدن اُبهٔ تېرول-
لمبېدلے:(لم-بې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لمبېدل-
لمبېدن:(لم-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لمبېدل-
لمبېدنګ:(لم-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لمبېدل-
لمبېدنه:(لم-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمبېدل-
لمبېدونکے:(لم-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لمبېدل-
لمبېدهٔ:(لم-بې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ لمبېدل-
لمبېزن:(لم-بې-زن)اسم صفت- د لامبو ماهر- لامبوزن-
لمټک:(لم-ټک)اسم- واحد- مذکر- سست سپے- لټ سپے- ناراست سپے-
لمتۍ:(لم-تۍ)اسم صفت- ښځه چې ړمنځ کړے شوې وی- ړمنځ کړې-
لمچټ:(لم-چټ)اسم- واحد- مذکر- ټپوس- غلیواز- لمڅټ-
لمچړ:(لم-چړ)اسم صفت- ښځه چې لکۍ ئې پرېکړے شوې وی- لکۍ پرېکړے-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زبر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، "ه "(ز-ړه)، "هٔ "(ړو-بې-دهٔ)

بونړۍ-

لمخټ:(لَم-خَټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لمچټ-

لمخۀ:(لَم-خَۀ)اسم- واحد- مذکر- د ټپوس د قسم يو مُردارخور مارغۀ- کنجي- لمخے-

لمخے:(لَم-خے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لمخۀ-

لمخے:(لَم-خے)اسم- واحد- مذکر- د وړې ټغر، قالين- بستره- جمع لمخي-

لمحه:(لَم-حه)اسم- واحد- مؤنث- لحظه- ساعت- لږ وخت-

لمدول:(لَم-ده-وَل)مصدر متعدی- ترکول- لوندول- خُشتول-

لمدون:(لَم-ده-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لمدول-

لمدونکے:(لَم-ده-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لمدول-

لمدونګ:(لَم-ده-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لمدول-

لمدونه:(لَم-ده-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمدول-

لمده:(لَم-ده)اسم صفت- د لوند مؤنث- لونده- خُشته-

لمده بل:(لَم-ده-بَل)اسم- واحد- مذکر- لنده بل- (۱)نګلے- سالن- ترکاري- (۲)رطوبت- لوندوالے-

لمر:(لَمر)اسم- واحد- مذکر- (۱)نمر- نور- آفتاب- (۲)غارمۀ- د نمر تاؤ-

لمرپرېواتۀ:(لَمر-پَرې-وا-تۀ)اسم- واحد- مذکر- نمرپرېواتۀ- (۱)د نمر پرېوتنه- نمر غُرخېدنه- (۲)د نمر پرېوتو وخت- نماښام- د نماښام وخت- (۳)قبله- مغرب- د نمر پرېوتو طرف-

لمرتګ:(لَمر-تَګ)اسم مرکب- مذکر- نمرتګ- (۱)د نمر رفتار- د نمر مزل- (۲)د نمر ختو سره روانېدنه- د نمر ختو وخت کښې تلنه- (افغانستان)-

لمرتندره:(لَمر-تَند-ره)اسم مرکب- مؤنث- د نمر تندر نيونه- نمر تتېدنه- نمرتندره- (افغانستان)-

لمرځرک:(لَمر-ځَرک)اسم مرکب- مذکر- د نمر راختنه- د نمر ځريکه وهنه- نمرځرک- لمرځريکه- (افغانستان)-

لمرځريکه:(لَمر-ځَری-که)اسم مرکب- مؤنث- وګورئ لمرځرک-

لمرخاتۀ:(لَمر-خا-تۀ)اسم مرکب- مذکر- نمرخاتۀ- (۱)د نمر راختنه- لمرځريک- (۲)د نمر راختلو وخت- سحر- (۳)مشرق- د نمر راختو طرف- شغرب-

لمرختيز:(لَمر-خه-تيز)اسم صفت- د نمرخاتۀ سره منسوب- نمرختيز- مشرقي-

لمرګل:(لَمر-ګَل)اسم مرکب- مذکر- وګورئ لمرګلے-

لمرګلے:(لَمر-ګَ-لے)اسم مرکب- يو قسم ګل چې مخ ئې پۀ نمر پسې تاويږي- کاپرګل- نمرګلے- نمرپرست- لمرګل- نمرغل- نمرمخے- لمرمخے- نباتاتي نوم هيلي ننتس (HELIANTHUS)- جمع لمرګلي-

لمرمخے:(لَمر-مۀ-خے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ لمرګلے- (۲- صفت)ښکلے- ښائسته- حسين- جمع لمرمخي-

لمرنے:(لَمه-ره-نے)اسم صفت- لمريز- نمريز- د لمر يا نمر سره منسوب- شمسي-

لمريز:(لَمه-ريز)اسم صفت- وګورئ لمرنے-

لمرے:(لَمه-رے)اسم صفت- پۀ نمر يا لمر وچ شوے- هغه څيز چې پۀ نمر وچ شوے وي- پۀ غرمو وچ شوے-

لُمړنے:(لُم-ړه-نے)اسم صفت- وړومبنے- لۀ ټولو وړاندې- وړاندينے- مخکښينے- مؤنث لمړنۍ- جمع لمړني-

لُمړنۍ:(لُم-ړه-نۍ)اسم صفت- د لُمړنی مؤنث- وګورئ لُمړنے-

لمړۍ:(لَمه-ړۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- د خوراک خُلې ته اچونکے مقدار- نمړۍ- ګپه- ګپ- نواله- لُقمه-

لُمړۍ:(لُم-ړۍ)اسم صفت- د لُمړی مؤنث- وګورئ لُمړے-

لُمړۍ خور:(لُم-ړۍ-خور)اسم- واحد- مؤنث- وړومبۍ خور- د ربيع الاوّل مطابق مياشتې نامه-

لُمړے:(لُم-ړے)متعلق فعل- (۱)وړومبے- وړاندې- مخکښې- اول- (۲- صفت)وړومبنے- مخکښينے- وړاندينے- مؤنث لُمړۍ- جمع لمړي-

لمس:(لَمس)اسم- واحد- مذکر- ګـتې وروړنه- څۀ څيز لـه لاس وروړنه- (م- عربي)-

لمس:(لَمس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لمسُون-

لمسول:(لَم-سه-وَل)مصدر متعدي- د بل خلاف راپاروِل- د بل خلاف بدی ته اماده کول- تحريک ورکول- لمسُون کول-

لمسولے:(لَم-سه-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لمسول-

لمسون:(لَم-سه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لمسول-

لمسون:(لَم-سُون)اسم- واحد- مذکر- د بل خلاف راپارونه- بدی ته اماده کونه- تحريک ورکونه- لمس- لمسه-

لمسونکے:(لَم-سُو-نکے)اسم صفت- لمسُونکے- راپارونکے- تحريک ورکونکے- مؤنث لمسونکه-

لمسونکے:(لَم-سه-وون-کے)اسم فاعل- مؤنث لمسونکې- جمع لمسونکي- وګورئ لمسول-

لمسونګ:(لَم-سه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لمسول-

لمسونه:(لَم-سه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمسول-

لمسوونے:(لَم-سه-وو-نے)اسم فاعل- مؤنث لمسوونې- جمع لمسووني- وګورئ لمسول-

لمسه:(لَم-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لمسُون-

لمسېدل:(لَم-سې-دَل)مصدر لازم- راپارولے کېدل- د بل پۀ خُلۀ د چا بدی ته اماده کېدل- تحريک ورکړے کېدل- لمسون اخستل- د چا پۀ لمسه کښې راتلل-

لمسېدلے:(لَم-سې-دۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لمسېدل-

لمسېدن:(لَم-سې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ لمسېدل-

لمسېدنګ:(لَم-سې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لمسېدل-

لمسېدنه:(لَم-سې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمسېدل-
لمسېدونکے:(لَم-سې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لمسېدل-
لمسېدهٔ:(لَم-سې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ لمسېدل-
لمسی:(لَم-سي)اسم- واحد- مؤنث- دَ اسپې پهٔ ملا باندې دَ ترلے شوې پټې لاندینۍ پسته حصه-
لمسے:(لَم-سے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه ورېنه کپړه چې دَ یخو علاقو وَسېدونکي ئ لهٔ پښو تاووي- (۲)وړه او خیګ څادر-
لمعه:(لَم-عه)اسم- واحد- مؤنث- خلا- پړقار- رڼا- نُور-
لمغړی:(لَم-غه-ړي)اسم- جمع- مؤنث- منت زاری- فریاد- ژړا فریاد- واوېلا- چغې سورې-
لمغړے:(لَم-غه-ړے)اسم صفت- چلباز- مکار- فرېبژن- خوشامدګر- جمع لمغړی-
لمغوټه:(لَم-غو-ټه)متعلق فعل- (۱)لاس تړلے- (۲)سمدستي- پهٔ فوری توګه-
لمکه:(لَم-که)اسم- واحد- مؤنث- لومه- دام- کړکې-
لملېټ:(لَم-لېټ)اسم مرکب- مذکر- تاخیر- ایسارتیا- ځنډ-
لمن:(لَه-مَن)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ قمیص لاندیني خوړنده حصه- جولۍ- خولۍ- (۲)دَ څهٔ څیز یا ځایُ غاړه، ژی- جمع لمنې-
لمنځ:(لَمنځ)اسم- واحد- مذکر- ستاینه- تعریف- احترام-
لمنخل:(لَمن-خَل)مصدر متعدی- وګورئ لمانځل-
لمنخلے:(لَمن-خهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لمانځل-
لمنخن:(لَمن-خن)حاصل مصدر- وګورئ لمانځل-
لمنخنه:(لَمن-خهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمانځل-
لمنخونکے:(لَمن-خون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لمانځل-
لمنخه:(لَمن-خه)اسم- واحد- مؤنث- دَ یوې غرنیزې ونې نامه- جمع لمنځې-
لمور:(لهٔ-مه-ور)اسم صفت- مذکر- غټ لَم لرونکے- مؤنث لموره-
لمونځ:(لَمونځ)اسم- واحد- مذکر- دَ مسلمانانو مخصوص پېنځهٔ وختیز عبادت- نمونځ-
لومه:(لُو-مه)اسم- واحد- مؤنث- د اس لهٔ وېښتو جوړ کړے شوے دام چې مرغۍ پرې نیولے کیږی- لمکه-
لمېسل:(لَمې-سَل)مصدر لازم- (۱)لیکل- تحریرول- (۲)مسوده کول-
لمېسلے:(لَمې-سهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لمېسل-
لمېسن:(لَمې-سَن)حاصل مصدر- وګورئ لمېسل-
لمېسنه:(لَمې-سهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لمېسل-
لمېسونکے:(لَمې-سون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لمېسل-
لن ترانی:(لن-ته-را-نی)کلمه- دَ یو ایت جُز- (۱)اصل معنیٰ ئ ده "تهٔ ما هر ګز نهٔ شې لیدے"- (۲)پهٔ پښتو کښې دَ لوئی، ځان ستاینه، لافې دَ پاره مستعمل دے-
لنج:(لَنج)اسم- واحد جمع- مؤنث- شونډې- لب- (م- عربی)-

لنج:(لَنج)اسم صفت- ګډ- پهٔ پښه شل- (م- فارسی)-
لنخې:(لَن-خې)اسم جمع- منت زاری- خواستونه- زاری ګانې-
لندانی:(لَن-دا-نی)اسم- واحد- مؤنث- نادانی- ساده توب- ناپوهی-
لنداره:(لَن-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- ننداره- تماشه-
لنده بل:(لَن-ده-بَل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لمده بل-
لندے:(لَن-دے)اسم- واحد- مذکر- لهٔ سیند نه وېستلے شوے وړوکے نېر یا لښتے-
لنډ:(لَنډ)اسم صفت- مذکر- (۱)دَ وږد ضد- کوتاه- مختصر- (۲)نژدې- قریب- مؤنث لنډه-
لنډاک:(لَن-ډاک)اسم صفت- بې سوچه کار کونکے- کم فکره- ناعاقبت اندېش- لنډنظرے- کوتاه نظر- لنډفکره- لنډلیدونکے- مؤنث لنډاکه-
لنډاکتوب:(لَن-ډاک-توب)اسم- واحد- مذکر- بې سوچه کار کونه- کم فکری- لنډنظری- کوتاه نظری- ناعاقبت اندېشی-
لنډبزرے:(لَنډ-به-زهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ښکاری مارغهٔ- باز- شاهین- جمع لنډبزری-
لنډپارے:(لَنډ-پا-رے)اسم صفت- (۱)دَ تنګ زړهٔ خاوند- تنګ زړے- ژر غصه کېدونکے- (۲)دَ خودغرضۍ دوستی کونکے- صرف دَ خپل مطلب دَ پاره دوستي کونکے- جمع لنډپاری-
لنډتوب:(لَنډ-توب)اسم- واحد- مذکر- لنډوالے- کوتاهی- مختصروالے-
لنډغر:(لَن-ډه-غَر)اسم صفت- هغه چې لکۍ ئ پرېکړے شوې وی- لکۍ پرېکړے- (۲)بې شرمه- بې حیا- اواره- فضول- لنډمر-
لنډفکره:(لَنډ-فک-ره)اسم صفت- وګورئ لنډاک-
لنډکے:(لَن-ډه-کے)اسم تصغیر- دَ لنډ تصغیر- ډېر لنډ- ډېر مختصر-
لنډکنډ:(لَنډ-کَنډ)متعلق فعل- (۱)سمدستي- پهٔ هغه ساعت- پهٔ فوری طور- (۲)ډېر نژدې- ډېر لنډ- (۳)ژر- پهٔ تادی سره- (۴)مختصر- پهٔ اختصار سره-
لنډلیدونکے:(لَنډ-لی-دون-کے)اسم صفت- وګورئ لنډاک- (افغانستان)-
لنډوالے:(لَنډ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لنډتوب-
لنډور:(لَن-ډه-وَر)اسم صفت- لویه لنډه لرونکے- لنډه ور-
لنډوکے:(لَن-ډو-کے)اسم تصغیر- دَ لنډ اسم تصغیر- لنډکے- ډېر لنډ- لنډے- جمع لنډوکی-
لنډول:(لَن-ډه-وَل)مصدر متعدی- (۱)مختصرول- کمول- (۲)فېصلهٔ کول- (۳)نژدې کول- جُختول- (۴)مزل کول- لار وهل- فاصله وهل-
لنډون:(لَن-ډه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لنډول-
لنډونکے:(لَن-ډه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لنډول-
لنډونګ:(لَن-ډه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لنډول-
لنډونه:(لَن-ډه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لنډول-
لنډه:(لَن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- دَ ملا لاندینۍ حصه- دَ کناټیو دَ بره حصه-

کُنه ړوب- ړونګه- جمع لنړي-

لنړه:(لن-ړه)اسم صفت- دَ لنړ مؤنث- وګورئ لنړ-

لنړه ور:(لن-ړه-ور)اسم صفت- وګورئ لنړور-

لنړمر:(لن-ړه-مر)اسم صفت- وګورئ لنډغر-

لنړيز:(لن-ړيز)اسم- واحد- مذکر- خلاصه- اختصار-

لنړېدل:(لن-ړې-دل)مصدر لازم- (۱)مختصرېدل- کمېدل- (۲)فېصله کېدل- (۳)نژدې کېدل- جختېدل- (۴)مزل کېدل- فاصله وهلے کېدل-

لنړېدن:(لن-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لنړېدل-

لنړېدنګ:(لن-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لنړېدل-

لنړېدنه:(لن-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لنړېدل-

لنړېدونکے:(لن-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لنړېدل-

لنړېدهٔ:(لن-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لنړېدل-

لنړی:(لن-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- یو قسم مار- دوه سرې- لټکه- کورمار-

لنړی:(لن-ړی)اسم صفت- دَ لنړی مؤنث- وګورئ لنړے-

لنړی:(لن-ړی)اسم- واحد- مؤنث- دَ پښتو دَ اولسی شاعرۍ یو صنف چې ورومبنۍ مصرعه یې لنډه وی-

لنړی:(لن-ړی)اسم صفت- بدکاره ښځه- فاحشه- کنجره- رنړۍ-

لنړے:(لن-ړے)اسم صفت- (۱)کم قد لړونکے- پیشتکے- (۲)بوتړے- لکی پرېکړے- بونجے-

لنړے مار:(لن-ړے-مار)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو یوه لوبه-

لنګ:(لنګ)اسم- واحد- مذکر- هغه کپړه چې دَ پرتوګ پهٔ ځای لهٔ وجود نه تاوطلے (تاوولے) شی- لنګوټ-

لنګ:(لنګ)اسم صفت- ګډ- ګډے- پهٔ پښه شل-

لنګتوب:(لنګ-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لنګتون-

لنګتون:(لنګ-تون)اسم- واحد- مذکر- بچے راوړنه- لنګېدنه- لنګتوب- لنګواله- لنګون- (۲)دَ لنګېدو ځای- زچه خانه-

لنګر:(لنګ-ګر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ قافلې دَ ودرېدو ځای- (۲)دَ اُسپنې زنځیر یا رسی چې دَ کشتۍ دَ ودرولو پهٔ غرض پهٔ څهٔ مضبوط څیز پورې تړلے شی- (۳)هغه ځای چرته چې ملنګانو او فقیرانو له خېرات ورکولے شی- (۴)هغه ډوډی چې پهٔ فقیرانو او مسکینانو خوړولے شی- (۵)دَ لویو خلقو باورچی خانه- دَ نغریو ځای- (۶)دَ خېمې لویه رسی- (۷)دَ پهلوانانو لنګوټ- (۸)دَ ملا لاندینۍ حصه- کناتې- ړونګه- (۹)وزن- بوج-

لنګرته:(لنګ-رهٔ-ته)اسم صفت- هغه ماده حیوان یا زنانه چې بچے یې زېږولے وی-

لنګرخانه:(لنګ-ګر-خا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ لنګر تقسیمېدو ځای- خېرات خانه-

لنګری:(لنګ-ری)اسم صفت- (۱)هغه څوک چې په لنګر کښې کار کوی- (۲)اخلے پخلے کونکے- باورچی-

لنګری:(لنګ-ری)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ مسالې، چکنۍ، نسوارو وغېره دَ ټکولو لوښے- چټو- بغری- برغی-

لنګس:(لنګ-ګس)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ګل- نرګس-

لنګواله:(لنګ-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لنګتون-

لنګوټ:(لنګ-ګوټ)اسم- واحد- مذکر- وړوکے لنګ چې ملنګان یا پهلوانان یې اچوی- جانګے- کچے- لنګوټے-

لنګوټے:(لنګ-ګو-ټے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ لنګوټ- (۲- صفت)هغه ملنګ چې لنګوټ یې اغستے وی-

لنګور:(لنګ-ګور)اسم- واحد- مذکر- یو قسم توره څله او وُږده لکۍ لرونکې بیزو یا شادو-

لنګول:(لنګ-که-ول)مصدر متعدی- (۱)پهٔ ماده حیوان یا ښځه بچے پېدا کول یا زېږول- (۲)ډېرول- پهٔ لږه سرمایه ډېره ګټه کول- (۳)څهٔ خبره ډېره زېدول، زیاتول-

لنګون:(لنګ-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ لنګول-

لنګون:(لنګ-ګون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لنګتون-

لنګونکے:(لنګ-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لنګول-

لنګونګ:(لنګ-که-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لنګول-

لنګونه:(لنګ-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لنګول-

لنګه:(لنګ-که)اسم صفت- (۱)هغه ښځه یا ماده حیوان چې بچے یې زېږولے وی- لنګرته- (۲)اسم- واحد- مؤنث- هغه ماده څاروے چې پئ پکښې وی- پئ ورکونکے څاروے-

لنګېدل:(لنګ-ګې-دل)مصدر لازم- (۱)بچے راوړل- بچے زېږول- (۲)ډېرېدل- لهٔ لږې سرمایې ډېره ګټه کېدل- لهٔ لږ څیز نه ډېره فائده اخستلے کېدل- (۳)څهٔ خبره ډېره زېدېدل، زیاتېدل-

لنګېدن:(لنګ-ګې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لنګېدل-

لنګېدنګ:(لنګ-ګې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لنګېدل-

لنګېدنه:(لنګ-ګې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لنګېدل-

لنګېدونکې:(لنګ-ګې-دون-کې)اسم فاعل- مؤنث- وګورئ لنګېدل-

لنګېدهٔ:(لنګ-ګې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لنګېدل-

لنګی:(لنګ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- لونګی- (۱)پټکے- پګړۍ- هغه سوچه کپړه چې لهٔ سره تاوطلے (تاوولے) شی- (۲)دَ ناوې دَ وادهٔ څادر- (۳)هغه سوچه څادر چې پهٔ وُږه اچولے شی-

لو:(لو)اسم- واحد- مذکر- (۱)فصل رېبنه- دَ فصل رېبلو کار- (۲)دَ انګورو ځانګه، خېلی-

لو:(لو)اسم- واحد- مذکر- غښتنه- خواهش- شوق-

لو:(لو)اسم- واحد- مذکر- لوگے- دوهه- دَ لوگی بوئ- دومه-

لو:(لو)اسم- واحد- مذکر- قسم- سوگند-

لو:(لو)حرف عطف- اگر- کهٔ- کهٔ چرې-

لوا:(له-وا)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بځرے- سپړکے- سپرغی- (م- عربی)-

لوا:(ل-وا)اسم- واحد- مؤنث- جنډه- علم- دَ فوځ نښه، نشان-

لوات:(لوات)اسم صفت- سپړدے- پرانستے- فراخ- ازاد- ارت- مؤنث لواته-

لواتول:(لوا-ته-ؤل)مصدر متعدی- سپړدل- پرانستل- ازادول- فراخول- ارتول-

لواتون:(لوا-ته-ؤن)حاصل مصدر- وګورئ لواتول-

لواتونکے:(لوا-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- مؤنث لواتونکې- جمع لواتونکي- وګورئ لواتول-

لواتونګ:(لوا-ته-ؤنګ)حاصل مصدر- وګورئ لواتول-

لواتونه:(لوا-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لواتول-

لواتېدل:(لوا-تې-دل)مصدر لازم- سپړدلے کېدل- پرانستلے کېدل- ازادېدل- ارتېدل-

لواتېدن:(لوا-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لواتېدل-

لواتېدنګ:(لوا-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لواتېدل-

لواتېدنه:(لوا-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لواتېدل-

لواتېدونکے:(لوا-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- مؤنث لواتېدونکې- جمع لواتېدونکي- وګورئ لواتېدل-

لواتېدهٔ:(لوا-تې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لواتېدل-

لواحق:(له-وا-حق)اسم- جمع- مذکر- د لاحق جمع- خپلوان- رشته دار-

لواحقین:(له-وا-ح-قین)اسم- جمع- دَ لواحق جمع- وګورئ لواحق-

لوار:(ل-وار)اسم- واحد- مذکر- د اسپنې کار کونکے- لوهار- لوزار- اینګر- مؤنث لواره- جمع لواران-

لوار:(لوار)اسم- واحد- مذکر- دَ سېلاب لاره- خوړ- (م- فارسی)-

لواړ:(لواړ)اسم صفت- (۱)دَ هوار ضد- شړل- لوړ ژور- ستغ- سخت- (۲)غیرمهذب- بې ډبه- مؤنث لواړه-

لواړتوب:(لواړ-توب)اسم- واحد- مذکر- ناهوارتیا- شړلتوب- ستغتوب- ستغوالے- سختوالے- (۲)بې تهذیبی- بې ډبی-

لواړول:(لوا-ړه-ؤل)مصدر متعدی- شړلول- ستغول- لوړ ژور کول- سختول-

لواړون:(لوا-ړه-ؤن)حاصل مصدر- وګورئ لواړول-

لواړونکے:(لوا-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لواړول-

لواړونګ:(لوا-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لواړول-

لواړونه:(لوا-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لواړول-

لواړېدل:(لوا-ړې-دل)مصدر لازم- شړلېدل- لوړ ژور کېدل- ستغېدل- سختېدل-

لواړېدن:(لوا-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لواړېدل-

لواړېدنګ:(لوا-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لواړېدل-

لواړېدنه:(لوا-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لواړېدل-

لواړېدونکے:(لوا-ړې-دون-کے)اسم فاعل- جمع لواړېدونکی- مؤنث لواړېدونکې- وګورئ لواړېدل-

لواړېدهٔ:(لوا-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لواړېدل-

لوازم:(له-وا-زم)اسم- جمع- دَ لازم جمع- اسپاب- سامان- اسباب- ضرورتونه-

لوازمات:(له-وا-ز-مات)اسم جمع- دَ لازم جمع الجمع- وګورئ لوازم- (م- عربی)-

لوامشر:(ل-وا-مهٔ-شر)اسم صفت- دَ فوځی دستې مشر- سرلښکر- (افغانستان)-

لواشه:(له-وا-شه)اسم- واحد- مؤنث- چپاتی- نری روټی، ډوډی-

لوانړے:(لوان-ړے)اسم- واحد- مذکر- کړے- کړمے- جمع لوانړی-

لوانګ:(له-وانګ)اسم- واحد- مذکر- دَ غرهٔ لمن- دَ غرهٔ دَ غاړې زمکه-

لوائح:(له-وا-اح)اسم- جمع- دَ لائحې جمع- (۱)دستورونه- قاعدې- (۲)رہاګانې- (م- عربی)-

لوباتل:(لو-با-تل)مصدر متعدی- قسمی کول- قسم ورکول-

لوباتلے:(لو-با-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- مؤنث لوباتلې- جمع لوباتلی- وګورئ لوباتل-

لوباتن:(لو-با-تن)حاصل مصدر- وګورئ لوباتل-

لوباتنګ:(لو-با-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوباتل-

لوباتنه:(لو-با-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوباتل-

لوباتونکے:(لو-با-تون-کے)اسم فاعل- جمع لوباتونکی- مؤنث لوباتونکې- وګورئ لوباتل-

لوبان:(لو-بان)اسم- واحد- مذکر- دَ یو قسم ونې خوشبودار چیړ- (م- هندی)-

لوبتک:(لوب-تک)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګوډاګے- (۲)لوبغاړے-

لوبتکه:(لوب-ته-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ لوبو څیز- (۲)ګوډی- جمع لوبتکې-

لوبټ:(لو-بټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لوپټ-

لوبخے:(لوب-خے)اسم- واحد- مذکر- دَ لوبو ځاے- دَ لوبو مېدان- لوبغالے- (افغانستان)-

لوبره:(لو-بهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- لومبړه-

لوبغاړے:(لوب-غا-ړے)اسم صفت- لوبګر- (۱)لوبه کونکے- پهٔ لوبه پوهٔ- (۲)ماهر- اُستاد- پهٔ څهٔ کار پوهٔ- جمع لوبغاړی- مؤنث لوبغاړې-

لوبغالے:(لوب-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- د لوبو ځاے- لوبخے- سټېډیم-

(افغانستان)-

لوبګر :(لوب-ګر)اسم صفت- مؤنث لوبګره- وګورئ لوبغاړے-

لوبول:(لو-به-ول)مصدر متعدی- (١)په لوبو کول- مشغولول- (٢)په چا په چل ول خپل کارونه کول- الۀ کار جوړول- (٣)پېسې په داؤ ابښودل- په پېسو جواری کول-

لوبولے :(لو-به-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- مؤنث لوبولې- جمع لوبولی- وګورئ لوبول-

لوبون:(لو-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ لوبول-

لوبونکے :(لو-به-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوبونکی- مؤنث لوبونکې- وګورئ لوبول-

لوبونګ:(لو-به-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ لوبول-

لوبونه:(لو-به-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوبول-

لوبوونے :(لو-به-وو-نے)اسم صفت- (١)لوبونکے- مشغولونکے- (٢)چالاک- لوبغاړے-

لوبه:(لو-به)اسم- واحد- مؤنث- (١)تماشه- ننداره- (٢)مشغله- د شغل کار- د مشغولتيا کار- (٣)سېل- (۴)اثر- د څۀ څيز لۀ اثره پېدا شوې خبره يا کار- جمع لوبې-

لوبه:(لو-به)اسم- واحد- مؤنث- د پښتو د اولسی شاعری يو مشهور صنف- د اولسی سندرو يو قسم-

لوبيا :(لو-بيا)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم غله چې ګنګړی ترې پخولے شی- باکړی- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ لتړی-

لوبېدل:(لو-بې-دل)مصدر لازم- (١)لوبې کول- مشغولېدل- (٢)په چل ول کار اخستلے کېدل- د چا الۀ کار جوړېدل- (٣)په داؤ ابښودلے کېدل- (۴)تجربه پېدا کېدل- ماهر کېدل-

لوبېدلے :(لو-بې-دۀ-لے)اسم مفعول- جمع لوبېدلی- مؤنث لوبېدلې- وګورئ لوبېدل-

لوبېدن:(لو-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لوبېدل-

لوبېدنګ:(لو-بې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوبېدل-

لوبېدنه:(لو-بې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوبېدل-

لوبېدونکے :(لو-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لوبېدل-

لوبېدۀ:(لو-بې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ لوبېدل-

لوبې غاړې:(لو-بې-غا-ړې)اسم مرکب- ماشومان په خپلو کښې مشغولېدنه- د وړو لوبې-

لوپ:(لوپ)اسم- واحد- مذکر- چل- هنر-

لوپټکی :(لو-پټ-کی)اسم تصغير- د لوپټې تصغير- وړه لوپټه- سپکه لوپټه- ځپوټکے- لوپټکی-

لوپټکی :(لو-پټ-کی)اسم تصغير- وګورئ لوپټکی-

لوپټه:(لو-په-ټه)اسم- واحد- مؤنث- د زنانو د سر ځپوټے- جمع لوپټې-

لوپه لوپه:(لو-په-لو-په)صفت مرکب- ګنخې ګنخې- کالکوټې- کلکوټې- کالکوټی- ګنجې ګنجې-

لوت:(لوت)اسم صفت- ناراست- لټ- سست- مؤنث لوته- جمع لوتونه-

لوتبه:(لو-تۀ-به)اسم- واحد- مؤنث- لويه تبه- وړده تبه- تپ محرقه-

لوته:(لو-ته)اسم- واحد- مؤنث- کڅوړه- ګتی- تېلی- جمع لوتې-

لوټ:(لوټ)اسم- واحد- مذکر- کاغذی سکه- نوټ- جمع لوټونه-

لوټ:(لوټ)اسم- واحد- مذکر- (١)تباهی- تالان- ظلم- غارت- ړاکه- (٢- صفت)تباه شوے- تالا- تاراج-

لوټ باز :(لوټ-باز)اسم صفت- لوټونکے- ړاکه مار- ړاکو- لوټمار- ظالم- لوټېرے-

لوټ بند :(لوټ-بند)اسم صفت- بې آرام- وارخطا- ويرېدونکے- ناقلار- مضطرب- لوټ پوټ-

لوټ پاټ:(لوټ-پاټ)اسم مرکب- مذکر- (١)لوټ تالان- لوټ مار- لوټنه او تالا کونه- (٢- صفت)لوټلے شوے- تالا- تباه کړے شوے-

لوټ پوټ:(لوټ-پوټ)اسم صفت- (١)وګورئ لوټ بند- (٢)عاشق- مئين- په مينه کښې غرق- (٣)لاندې باندې- د يو بل د پاسه-

لوټکه:(لوټ-که)اسم- واحد- مؤنث- سرکونړی- سورلکی- بازيګره- سر لاندې او پښې بره کونه او پړمخې اوړېدنه- بازينګنه- لوټکے- بازينګته- جمع لوټکې-

لوټکے :(لوټ-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لوټکه- جمع لوټکی-

لوټکے :(لوټ-کے)اسم- واحد- مذکر- يو خاورين غنډے ژور لوښے چې د اُبو ښنلو او د ارټ نه د اُبو راوېستلو د پاره پکارولے شی- جمع لوټکی-

لوټکے :(لوټ-کے)اسم- واحد- مذکر- د نغری يوه پښه- د نغری پايه- جمع لوټکی-

لوټل:(لو-ټل)مصدر متعدی- تباه کول- تالا کول- غارت کول- تاراج کول- په زور اخستل- په ظلم اخستل- لوټول-

لوټلے :(لو-ټۀ-لے)اسم مفعول- مؤنث لوټلې- جمع لوټلی- وګورئ لوټل-

لوټ مار :(لوټ-مار)اسم مرکب- مذکر- تباهی او تالان- ظلم- غارت- ړاکه- لوټماری-

لوټمار :(لوټ-مار)اسم صفت- وګورئ لوټباز-

لوټماری:(لوټ-ما-ری)اسم مرکب- مؤنث- وګورئ لوټ مار-

لوټماله:(لوټ-ما-له)اسم- واحد- مؤنث- لۀ لرګيو يا تختو نه جوړه هغه اله چې د قلبې يا ټربکټر په ذريعه پرې د سادين لوټې هوارولے يا مېده کولے شی- ماله- لوټمل- جمع لوټمالې-

لوټمل:(لوټ-مل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لوټماله-

لوټن:(لو-ټن)حاصل مصدر- وګورئ لوټل-

لوټنګ:(لو-ټنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوټل-

ے (تن-دے)، ی (پيا-لی)، ي (مې-ره-ول)، ې (ښې-رل) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ١

لوټنه:(لُو-ټهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ لوټل-

لوټول:(لُو-ټه-وَل)مصدرِ متعدی- وګورئ لوټل-

لوټون:(لُو-ټه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ لوټل-

لوټونکے:(لُو-ټون-کے)اسمِ فاعل- جمع لوټونکی- مؤنث لوټونکې- وګورئ لوټل-

لوټونکے:(لُو-ټه-وون-کے)اسمِ فاعل- مؤنث لوټونکې- جمع لوټونکی- وګورئ لوټل-

لوټونګ:(لُو-ټه-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ لوټل-

لوټونه:(لُو-ټه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ لوټل-

لوټه:(لُو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خاورو چمکے- غنډه-

لوټه:(لو-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کوزې پهٔ شان خو لهٔ کوزې نه لږ زړوکے دَ اُبو لوښے- لېټه-

لوټه لوټه:(لُو-ټه-لُو-ټه)اسمِ صفت- مرکب- دانه دانه- غُنډاری غُنډاری- بېل بېل-

لوټېدل:(لو-ټې-دَل)مصدرِ لازم- تباه کېدل- تالا کېدل- پهٔ زور اخستے کېدل-

لوټېدن:(لُو-ټې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ لوټېدل-

لوټېدنګ:(لُو-ټې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ لوټېدل-

لوټېدنه:(لُو-ټې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ لوټېدل-

لوټېدونکے:(لُو-ټې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ لوټېدل-

لوټېدهٔ:(لو-ټې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لوټېدل-

لوټېرے:(لُو-ټې-رے)اسم صفت- وګورئ لُوټباز-

لُوټې لُوټې:(لُو-ټې-لُو-ټې)اسمِ صفت- مرکب- (۱)هغه ځائ چرته چې هېرې لُوټې یا چمان وی- (۲)چمان چمان- غُنډاری غُنډاری- دَ لوټو پهٔ شان- (۳)وران- تباه- ویجاړ-

لُوټے:(لُو-ټے)اسمِ صفت- فضول ګرځېدونکے- اواره- تشپاړے- تشبانے- مفلس- نادار-

لوټ:(لُوټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګډه- ګډون- امېزش- (۲)داغ- عیب-

لُوچ:(لُوچ)اسم صفت- (۱)کم اصل- کمینه- لچر- لوفر- فضول- بداخلاقه- لوچک- لوچه- (۲)وګورئ لُوڅ- مؤنث لوچه-

لوچک:(لُو-چک)اسمِ صفت- لوڅک- (۱)وګورئ لوچ- (۲)هغه حیوان چې وېښتهٔ پرې نهٔ وی- مؤنث لُوچکه-

لُوچکی:(لُو-چه-کی)اسم- واحد- مؤنث- ماشوړه- دَ تار غُنډارے-

لوچ لغړ:(لُوچ-له-غړ)اسم صفت- وګورئ لوڅ لغړ-

لُوچه:(لُو-چه)اسم صفت- وګورئ لوچ-

لوچه توب:(لُو-چه-توب)اسم- واحد- مذکر- کمینه توب- کم اصل توب- بداخلاقی-

لُوچی:(لو-چی)اسم- واحد- مؤنث- نری چپاتی یا پراټه چې پهٔ غوړو کښے پخولے شی- قتلمه- پوړی- پوڼی-

لوڅ:(لُوڅ)اسم صفت- بربنډ- بېخی لغړ- لُوچ- لڅ- مؤنث لوڅه-

لوڅ پوڅ:(لوڅ-پوڅ)متعلق فعل- پړی پهٔ پړې- لوټ پهٔ لوټ- پهٔ مره پړه-

لوڅتوب:(لُوڅ-توب)اسم- مذکر- بربنډوالے- بربنډتوب- لوڅوالے- لغړتوب-

لوڅک:(لُو-څک)اسم صفت- وګورئ لوچک-

لوڅکه:(لُو-څه-که)اسم- واحد- مؤنث- کوړی- ننځکه- لوبتکه- لوڅکی- جمع لوڅکې-

لوڅکی:(لو-څه-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ لوڅکه-

لوڅکے:(لو-څه-کے)اسم صفت- خوشامندګر- چاپلوس-

لوڅ لغړ:(لوڅ-له-غړ)اسم صفت- مرکب- لوچ لغړ- بربنډ لغړ- بېخی بربنډ- بېخی لغړ- مؤنث لوڅه لغړه-

لوڅول:(لو-څه-وَل)مصدرِ متعدی- (۱)بربنډول- لغړول- (۲)بې عزته کول- سپکول- لهٔ حیا خلاصول-

لوڅون:(لو-څه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لوڅول-

لوڅونکے:(لُو-څه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع لوڅونکی- مؤنث لوڅونکې- وګورئ لوڅول-

لوڅونګ:(لُو-څه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوڅول-

لوڅونه:(لُو-څه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوڅول-

لوڅه:(لوهٔ-څه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ مېلمنو دَ روټې خوړلو وار- دَ پښتنو دَ ځنو قبیلو هغه دستور چې پکښې پهٔ مېلمنو پهٔ وار وار روټې خوړولے شی-

لوڅې پوڅې:(لُو-څې-پو-څې)اسم- جمع- مرکب- (۱)منتونه زاری- ژړا فریاد- (۲)دَ ځنکدن یا دَ مرض پهٔ سختی کښې لاس و پښې ټکونه- دَ بې وسی او پرېشانی څرګندونه-

لوڅېدل:(لُو-څې-دَل)مصدر لازم- (۱)بربنډېدل- لغړېدل- (۲)بې عزته کېدل- سپکېدل- لهٔ حیا خلاصېدل-

لوڅېدل:(لو-څې-دَل)مصدر لازم- اوړېدل رااوړېدل- پړې پهٔ پړې اوړېدل-

لوڅېدلے:(لو-څې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لوڅېدل-

لوڅېدن:(لُو-څې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ لُوڅېدل-

لوڅېدن:(لو-څې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ لوڅېدل-

لوڅېدنګ:(لُو-څې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لُوڅېدل-

لوڅېدنګ:(لو-څې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوڅېدل-

لوڅېدنه:(لُو-څې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لُوڅېدل-

لوڅېدنه:(لو-څې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوڅېدل-

لوڅېدونکے:(لُو-څې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوڅېدونکی- مؤنث لوڅېدونکې- وګورئ لُوڅېدل-

لوڅېدونکے:(لو-څې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر-جمع لوڅېدونکی- مؤنث لوڅېدونکې- وګورئ لوڅېدل-

لوښېدهٔ:(لو-ښې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لوښېدل-

لوښېدهٔ:(لو-ښې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لوښېدل-

لوح:(لوح)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لیکلو تختئ- (۲)دَ قبر دَ سر کاڼے- شناخته- (۳)سرورق- دَ کتاب پاسنے مخ- دَ کتاب دَ سر صفحه-

لوخ:(لوخ)اسم- واحد- مذکر- دَ مزری پهٔ شان یو قسم واښهٔ- لوخه- نباتاتی نوم ټائیفاانګس ټفولیا (TYPHA ANGUS TIFOLIA)- (۲)صفت- کره ملا لرونکے- ټیے-

لوخه:(لو-خه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لوخ-

لوخړن:(لو-خه-ړن)اسم صفت- وګورئ لوغړن- مؤنث لوخړنه-

لوخړول:(لوخ-ړه-ول)مصدرِ متعدی- لغړول- لوغړول- ړړې پهٔ ړړې اړول- تُوغلول-

لوخړولے:(لوخ-ړه-وهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع لوخړولی- مؤنث لوخړولې- وګورئ لوخړول-

لوخړون:(لوخ-ړه-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ لوخړول-

لوخړونکے:(لوخ-ړه-رون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع لوخړونکي- مؤنث لوخړونکې- وګورئ لوخړول-

لوخړونګ:(لوخ-ړه-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ لوخړول-

لوخړونه:(لوخ-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ لوخړول-

لوخړه:(لو-خهٔ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لوخزه- ډېر لوګے- ډړوزه- لیخړه- لوهړه- (۲)صفت- تباه- برباد- تالا-

لوخړېدل:(لوخ-ړې-دل)مصدرِ لازم- لغړېدل- لوغړېدل- ړړې پهٔ ړړې اوړېدل- توغلېدل- رغښتل-

لوخړېدلے:(لوخ-ړې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- واحد- مذکر- جمع لوخړېدلی- مؤنث لوخړېدلې- وګورئ لوخړېدل-

لوخړېدن:(لوخ-ړې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ لوخړېدل-

لوخړېدنګ:(لوخ-ړې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ لوخړېدل-

لوخړېدنه:(لوخ-ړې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ لوخړېدل-

لوخړېدونکے:(لوخ-ړې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع لوخړېدونکی- مؤنث لوخړېدونکې- وګورئ لوخړېدل-

لوخړېدهٔ:(لوخ-ړې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لوخړېدل-

لوخزه:(لو-خهٔ-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لوخړه-

لوخه:(لو-خه)اسم- واحد- مؤنث- دَ مزری پهٔ شان یو قسم واښهٔ چې شم دَ مزری کار ترې اخستے شي- لوخ-

لود:(لود)اسم- واحد- مذکر- دَ غرهٔ لمن-

لودانه:(لو-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ځمځی-

لودل:(لو-دل)مصدر- متروک- وګورئ لل-

لوده:(لو-ده)اسم صفت- شوده- کم عقل- احمق- بوله-

لوډ:(لوډ)اسم- واحد- مذکر- بوج- وزن- بار- (م- انګرېزی)-

لوډسپیکر:(لوډ-سپی-کر)اسم- واحد- مذکر- اواز تېزونکې اله- هغه اله چې اواز تر لرې لرې رسوی- لاوډسپیکر- (م- انګرېزی)-

لوذعی:(لو-ذه-عي)اسم صفت- ډېر زیات عقلمند- هوښیار- هښیار- زیرک- (م- عربی)-

لور:(لور)اسم- واحد- مذکر- دَ فصل یا وښو رېبلو اوزار-

لور:(لور)اسم- واحد- مذکر- طرف- ډډه- اړخ- خوا- لورے-

لور:(لور)اسم- واحد- مذکر- ښهٔ سلوک- رواداری- مهربانی-

لور:(لور)اسم- واحد- مؤنث- دَ خوئ ضد- زنانه اولاد- جمع لوڼه-

لورګ:(لورګ)اسم- واحد- مذکر- ګیدړ- شغال-

لورول:(لو-ره-ول)مصدرِ متعدی- ښهٔ سلوک کول- رواداری کول- خلوص کول-

لورولے:(لو-ره-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع لورولی- وګورئ لورول-

لورون:(لو-ره-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ لورول-

لورونکے:(لو-ره-رون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع لورونکی- مؤنث لورونکې- وګورئ لورول-

لورونګ:(لو-ره-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ لورول-

لورونه:(لو-ره-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ لورول-

لورېدل:(لو-رې-دل)مصدرِ لازم- ښهٔ سلوک کېدل- رواداری کېدل- اخلاص کېدل-

لورېدلے:(لو-رې-دهٔ-لے)اسمِ مفعول- جمع لورېدلی- مؤنث لورېدلې- وګورئ لورېدل-

لورېدن:(لو-رې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ لورېدل-

لورېدنګ:(لو-رې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ لورېدل-

لورېدنه:(لو-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ لورېدل-

لورېدونکے:(لو-رې-دون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر-جمع لورېدونکی- مؤنث لورېدونکې- وګورئ لورېدل-

لورېدهٔ:(لو-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لورېدل-

لوړ:(لوړ)اسم صفت- مذکر- وربغ- وُچت- دنګ- بلند- مؤنث لوړه-

لوړ:(له-وړ)اسم- واحد- مذکر- کوتک- پېړه ډنډه- ډانګ- ډانګے-

لوړ:(لوړ)اسم- واحد- مذکر- قسم- حلف- سوګند- لوړه-

لوړا:(لو-ړا)اسم صفت- لوړاپوک- لوړ دنګ- وچت قد لرونکے- (۲)کم عقل- بېوقوف-

لوړاپوک:(لو-ړا-پوک)اسم صفت- وګورئ لوړا-

لوړاوے:(لوهٔ-ړا-وے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وُچتوالے- لوړوالے- لوړتیا-

لوړتوب- بلندی- دنگ والے- (۲)درناوے- اعزاز- سرخروئی-

لوړتوب:(لوړ-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لوړاوے-

لوړتیا:(لوړ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لوړاوے-

لوړز:(لوه-ړز)اسم- واحد- مذکر- مرز- بټېر-

لوړژور:(لوړ-ژه-وړ)اسم صفت- (۱)ناهموار- کږوږ- هغه چې څهٔ لوړ او څهٔ ژور وی- ناهموار- (۲)اسم- لوړوالے او ژوروالے- ناهمواری- (۳)تضاد- فرق- مؤنث لوړه ژوره-

لوړکے:(لوهٔ-ړه-کے)اسم صفت- دَ لوړ اسم تصغیر- معمولی لوړ- دنګ- لهٔ حده لږ شان لوړ، وُچت- جمع لوړکی-

لوړل:(لو-ړل)مصدر متعدی- قسم خوړول- سوګند پورته کول-

لوړمابن:(لوړ-مابن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لُړمابن-

لوړماک:(لوړ-ماک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لُړمابن-

لوړن:(لو-ړن)حاصل مصدر- وګورئ لوړل-

لوړنګ:(لو-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوړل-

لوړنه:(لو-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوړل-

لوړنے:(لو-ړهٔ-نے)اسم صفت- قسم خوړونکے- سوګند پورته کونکے- جمع لوړنی-

لوړو:(لو-ړو)اسم صفت- قسم خور- پهٔ مره خبره قسم خوړونکے- چېی پهٔ چېی سوګند پورته کونکے-

لوړواله:(لوړ-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- وُچتوالے- بلندی- لوړوالے-

لوړوالے:(لوړ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لوړاوے-

لوړ و ژور:(لوړ-وُ-ژه-ور)اسم صفت- وګورئ لوړ ژور-

لوړول(۱):(لوهٔ-ړه-وَل)مصدر متعدی- (۱)وُچتول- جګول- قد زیاتول- (۲)ترقی ورکول- (۳)عزت ورکول- درناوے کول- درنول-

لوړول(۲):(لوهٔ-ړه-وَل)مصدر متعدی- لهٔ څهٔ څیزه تهوتې بیلول- نړول- نښول- ورانول-

لوړول:(لو-ړه-ول)مصدر متعدی- قسم ورکول- سوګند ورکول- پهٔ چا حلف وُچتول-

لوړولے:(لوهٔ-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع لوړولی- مؤنث لوړولې- وګورئ لوړول(۲)-

لوړولے:(لو-ړه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع لوړولی- مؤنث لوړولې- وګورئ لوړول-

لوړون:(لوهٔ-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لوړول(۱)-

لوړون:(لوهٔ-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لوړول(۲)-

لوړون:(لو-ړه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ لوړول-

لوړونکے:(لوهٔ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوړونکی- مؤنث لوړونکې- وګورئ لوړول(۱)-

لوړونکے:(لوهٔ-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوړونکی- مؤنث لوړونکې- وګورئ لوړول(۲)-

لوړونکے:(لو-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوړونکی- مؤنث لوړونکې- وګورئ لوړول-

لوړونګ:(لوهٔ-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوړول(۱)-

لوړونګ:(لوهٔ-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوړول(۲)-

لوړونګ:(لو-ړه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوړول-

لوړونه:(لوهٔ-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوړول(۱)-

لوړونه:(لوهٔ-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوړول(۲)-

لوړونه:(لو-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوړول-

لوړه:(لو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فولاد- پولاد- (۲)تېره چڼه- کریکه- جمع لوړې-

لوړه:(لو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لوړ- جمع لوړې-

لوړه:(لوهٔ-ړه)اسم صفت- (۱)دَ لوړ مؤنث- وګورئ لوړ- (۲)اسم- وچت ځاې- ډېه- بلند ځاې- (۳)لوړوالے- بلندی- وُچتوالے- جمع لوړې-

لوړه:(لو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بارانی سېلاب لار- خوړ-

لوړه ژوره:(لوهٔ-ړه-ژه-وهٔ-ره)اسم مرکب- (۱)دَ لوړ ژور مؤنث- وګورئ لوړ ژور- (۲)دَ ژوند تاودهٔ ساړهٔ، خواږهٔ ترخهٔ-

لوړیز:(لوهٔ-ړیز)اسم صفت- لوړ- وُچت- دنګ- جګ- بلند-

لوړېدل(۱):(لوهٔ-ړې-دَل)مصدر لازم- (۱)وُچتېدل- جګېدل- دنګېدل- قد زیاتېدل- (۲)ترقی کول- مخکښې کېدل- (۳)عزت کېدل- درناوے کېدل- درنېدل-

لوړېدل(۲):(لوهٔ-ړې-دَل)مصدر لازم- لهٔ څهٔ څیزه تهوتې بیلېدل- نړېدل- نښېدل- ورانېدل-

لوړېدلے:(لوهٔ-ړې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع لوړېدلی- مؤنث لوړېدلې- وګورئ لوړېدل(۲)-

لوړېدن:(لوهٔ-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ لوړېدل(۱)-

لوړېدن:(لوهٔ-ړې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ لوړېدل(۲)-

لوړېدنګ:(لوهٔ-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوړېدل(۱)-

لوړېدنګ:(لوهٔ-ړې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوړېدل(۲)-

لوړېدنه:(لوهٔ-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوړېدل(۱)-

لوړېدنه:(لوهٔ-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوړېدل(۲)-

لوړېدونکے:(لوهٔ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوړېدونکی- مؤنث لوړېدونکې- وګورئ لوړېدل(۱)-

لوړېدونکے:(لوهٔ-ړې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوړېدونکی- مؤنث لوړېدونکې- وګورئ لوړېدل(۲)-

لوړېدهٔ:(لوهٔ-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ لوړېدل(۱)-

لوړېدهٔ:(لوهٔ-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه-

وګورئ: لوړېدل(۲)-

لوړی:(لو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- د معمولی قسم اُسپنه- ادنیٰ قسم اُسپنه-

لوړی:(لو-ړی)اسم- واحد- مذکر- یو قسم نری نری واښهٔ چې په غنمو کښې راخیژی-

لوز:(لوز)اسم- واحد- مذکر- د لفظ مغفن- ژبه- قول- وعده- لوظ-

لوز:(لوز)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)بادام- نباتاتی نوم امیګډېلس کمیونس (AMYGDALUS COMMUNIS L)- (۲)لهٔ بادامو جوړه مټائی-

لُوز:(لُوز)اسم- واحد- مذکر- د شاتو مچی- توره مچی- لُوزه- غلاوزه-

لوزپایه:(لوز-پا-یه)اسم- واحد- مؤنث- اندرپایه- پوړی-

لوزکه:(لو-زه-که)اسم- واحد- مؤنث- کوړاګے- ګوړی- نبنخکه-

لُوزه:(لُو-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لُوز- جمع لوزې-

لوزینه:(لو-زی-نه)اسم- واحد- مؤنث- د بادامو حلوا-

لوږه:(لوهٔ-ږه)اسم- واحد- مؤنث- د خوراک خواهش- ولږه- اشتها- نهره-

لوږه تنده:(لوهٔ-ږه-تن-ده)اسم مرکب- (۱)د خوراک څښاک خواهش- نهره او تنده- خوراک او اُبو څښلو ته زړهٔ کېدنه- (۲)سختی- تنګسیا- نېستی-

لوس:(لوس)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوشامنده- خوشامده- چاپلوسی- (۲)صفت- حقیر- کمینه- سپک-

لوست:(لوست/لوست)اسم- واحد- مذکر- یو لیکلے یا چاپ شوے شے ولاړونه، پاڅونه- مطالعه- لُست-

لوست:(لوست)اسم- واحد- مذکر- قے- ګرځون- اُلټی- کانګه-

لوستل:(لوس-تل)مصدر متعدی- قے کول- اُلټی کول- ګرځول- ګرځون کول- کانګې کول- لستل- مطالعه کول-

لوستل:(لوس-تل)مصدر متعدی- شیندل- خورول- دانه وانه کول- نوستل- نُستل-

لوستلے:(لوس-تهٔ-لے)صفت/مفعول- جمع لوستلی- مؤنث لوستلې- وګورئ لوستل-

لوستن:(لوس-تن)حاصل مصدر- وګورئ لوستل-

لوستن:(لوس-تن)حاصل مصدر- وګورئ لوستل-

لوستنګ:(لوس-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوستل-

لوستنګ:(لوس-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوستل-

لوستنه:(لوس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوستل-

لوستنه:(لوس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوستل-

لوستونکے:(لوس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوستونکی- مؤنث لوستونکې- وګورئ لوستل-

لوستونکے:(لوس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوستونکی- مؤنث لوستونکې- وګورئ لوستل-

لوستی:(لوس-تی)اسم- واحد- مؤنث- د یوې لوبې نامه-

لوستی:(لوس-تی)اسم- واحد- مؤنث- لپه-

لوسره:(لو-س-ره)اسم- واحد- مؤنث- د کوژدنې یو رسم چې پکښې ناوینځ له نکریزې پورې کولے شی- لوسېره- لاس سوره-

لُوسی:(لُو-سی)صفت/متعلق فعل- وګورئ لاسی-

لوسېره:(لو-سې-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لوسره-

لوش:(لوش)اسم صفت- (۱)کړه خُلهٔ لرونکے- کوږخُلے- (۲)د تالاؤ یا حوض په تل کښې سخا خټه- (فارسی)-

لوشاک:(لو-شاک)اسم- واحد- مذکر- خړې اُبهٔ- کړوب- هغه اُبهٔ چې خاوره پکښې ګډه شوې وی-

لوشل:(لوه-شل)مصدر متعدی- د ماده څاروی لهٔ تیو نه پئ راوېستل- لوغل- لوښل- لوېغل- لشل-

لوشلے:(لوه-شهٔ-لے)اسم صفت/مفعول- جمع لوشلی- مؤنث لوشلې- وګورئ لوشل-

لوشن:(لوه-شن)حاصل مصدر- وګورئ لوشل-

لوشونکے:(لوه-شون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوشونکی- مؤنث لوشونکې- وګورئ لوشل-

لوشنګ:(لوه-شنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوشل-

لوشنه:(لوه-شهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوشل-

لوشونے:(لوه-شونے)اسم فاعل- لوشونکے- جمع لوشونی- وګورئ لوشل-

لوشه:(لو-شه)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- (۱)ناجائز بچے- حرامی بچے- (۲)صفت- غټې شونډې لرونکے بنیادم- پېړشونډے-

لوښتل:(لوښ-تل)مصدر متعدی- لهٔ بېخه ویستل- نړول-

لوښتلے:(لوښ-تهٔ-لے)صفت/مفعول- واحد- مذکر- وګورئ لوښتل-

لوښتن:(لوښ-تن)حاصل مصدر- وګورئ لوښتل-

لوښتنګ:(لوښ-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوښتل-

لوښتنه:(لوښ-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوښتل-

لوښتونکے:(لوښ-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوښتونکی- مؤنث لوښتونکې- وګورئ لوښتل-

لوښتهٔ:(لوښ-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ لوښتل-

لوښتے:(لوښ-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لښتے-

لوښی لرګی:(لو-ښی-لر-ګی)اسم مرکب- سامان- کهړه- اسباب-

لوښے:(لو-ښے)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه څیز چې بل څیز پکښې اچولے یا سمبالولے شی- ظرف- (۲)اصل- فطرت-

لوطی:(لو-طی)اسم صفت- (۱)د حضرت لوط علیه السلام سره تعلق لرونکے- (۲)د ملکانو سره بدفعلی کونکے- بچه باز- ړاګے- هلک لوبے- (۳)ټوټمار- ټوقی- نقلی- مسخرې کونکے-

لوظ:(لوظ)اسم- واحد- مذکر- لفظ- قول- اقرار- ژبه- قول- جمع لفظونه-

لوظ قول:(لوظ-قول)اسم مرکب- لفظ او اقرار- ژبه، وعده- قول او اقرار-

لوظنامه:(لوظ-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه لیک چې پکښې د څهٔ خبرې یا

ئ (څی-رل)، ې (هې-ره-ول)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

کار اقرار یا ژبه وکړے شي- اقرارنامه- دستاوېز- عهدنامه-

لوع:(لوع)اسم- واحد- مذکر- ناراضتیا- ناراضي- خفګان- زړهٔ بداوے- (م- عربی)-

لوغ:(لوغ)اسم- لوشنه- دٔ ماده څاروی لهٔ تیو پئ راوېستنه-

لوغړن:(لو-غه-ړن)صفت- پهٔ لوګیو تور شوے- نیم سوزېدلے- (۲)بدنصیب- کم بخت- سیاه بخت-

لوغړول:(لوغ-ړه-ؤل)مصدر متعدی- وګورئ لغړول، سره دٔ لوازماتو-

لوغړېدل:(لوغ-ړې-دل)مصدر لازم- وګورئ لغړېدل سره دٔ لوازماتو-

لوغزه:(لو-غهٔ-زه)اسم- مونث- لنګه غوا یا چېلۍ- پئ کونکې غوا یا چېلۍ- جمع لوغزې-

لوغس:(لو-غس)صفت- وږسترګے- بخن- ارواوړے- ارواخوارے- حریص- لوغسے-

لوغسی:(لو-غهٔ-سی)صفت- هغه لنګ ماده څاروے چې پیو لوشلو ته څوک خان ته پهٔ اسانه نهٔ پرېږدی- کتاره-

کوغسے:(لو-غهٔ-سے)صفت- وګورئ لوغس-

لوغل:(لوه-غل)مصدر- لوشل- لوېښل- لوېشل-

لوغلې:(لوه-غهٔ-لې)صفت- وګورئ لوغل-

لوغن:(لوه-غن)حاصل مصدر- وګورئ لوغل-

لوغنګ:(لوه-غنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوغل-

لوغنه:(لوه-غهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوغل-

لوغول:(لو-غه-ؤل)مصدر متعدی- پهٔ تودو ایرو کښې توغلول- ربړول- پهٔ ګرمو ایرو کښې لړل- معمولی سوختول- (۲)انکار تازه کول- پهٔ مزه مزه بلول- (۳)څهٔ خبره یا معامله جاری ساتل- (۴)تزنول- کړول-

لوغولے:(لو-غه-ؤهٔ-لے)صفت/مفعول- وګورئ لوغول-

لوغون:(لو-غه-ؤن)حاصل مصدر- وګورئ لوغول-

لوغونکے:(لو-غه-وون-کے)اسم فاعل- جمع لوغونکی- مؤنث لوغونکې- وګورئ لوغول-

لوغونګ:(لو-غه-ؤنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوغول-

لوغونه:(لو-غه-ؤهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوغول-

لوغونه:(لوه-غو-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه کټوی، بالټے یا لوښے چې لهٔ څاروی پکښې پئ رالوشلے شي-

لوغي:(لو-غي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کټوی- کټې- دوښې-

لوغېدل:(لو-غې-دل)مصدر لازم- پهٔ تودو ایرو کښې توغلېدل- پهٔ ګرمو ایرو کښې لړلے کېدل- معمولی سوختېدل- پخېدل- (۲)تازه کېدل- بلېدل- (۳)څهٔ خبره یا معامله جاری ساتلے کېدل- (۴)تزنېدل- کړېدل-

لوغېدلے:(لو-غې-دهٔ-لے)صفت مفعول- جمع لوغېدلی- مؤنث لوغېدلې- وګورئ لوغېدل-

لوغېدن:(لو-غې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لوغېدل-

لوغېدنګ:(لو-غې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوغېدل-

لوغېدنه:(لو-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوغېدل-

لوغېدونکے:(لو-غې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوغېدونکی- مؤنث لوغېدونکې- وګورئ لوغېدل-

لوک:(لوک)اسم- واحد- مذکر- (۱)انسان- بشر- (۲)عالم ارواح- دٔ روحونو جهان- (۳)دُنیا- جهان- (۴)لاندینی طبقه-

لوکاټ:(لو-کاټ)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو قسم زیړ رنګ لورنګې مېوه- نباتاتی نوم ایریوبوټریا جاپانیکا (ERIOBOTRYA JAPANICA)-

لوکوټې:(لو-کو-ټې)صفت/متعلق فعل- وګورئ لړکې- لړشان- لکوټې-

لوګ(۱):(لوګ)صفت- بې فائدې- بې کار- فضول- مؤنث لوګه-

لوګ(۲):(لوګ)اسم- واحد- مذکر- صحرا- بیابان- شاړه- لوګه-

لوګر:(لو-ګر)صفت- فصل رېبونکے- لو کونکے- لوګرے-

لوګرے:(لو-ګهٔ-رے)صفت- وګورئ لوګر-

لوګرے:(لو-ګهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- دٔ ساز یو قسم- جمع لوګری-

لوګړن:(لوګ-ړن)صفت- لوګی وهلے- پهٔ لوګی تور شوے- لوګن-

لوګن:(لو-ګن)اسم صفت- وګورئ لوګړن-

لوکول:(لو-که-ؤل)مصدر متعدی- لوکے کول- لوکے وېستل- (۲)بلول- لګول- (۳)قربانول- خارول- (۴)تباه کول- بربادول- ضائع کول- (۵)افواه خورول- پروپېګنډه کول-

لوکون:(لو-که-ؤن)حاصل مصدر- وګورئ لوکول-

لوکونکے:(لو-که-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع لوکونکی- مؤنث لوکونکې- وګورئ لوکول-

لوکونګ:(لو-که-ؤنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوکول-

لوکونه:(لو-که-ؤهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوکول-

لوګه:(لو-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ لوګ نمبر ۲-

لوګی خانه:(لو-ګی-خا-نه)اسم مرکب- مؤنث- دٔ لوګی دٔ وتو لار- موری- روزان- لوے- جمع لوګی خانې-

لوکېدل:(لو-کې-دل)مصدر لازم- (۱)لوکے کېدل- لوکے کول- لوکے وتل- (۲)بلېدل- لګېدل- (۳)قربانېدل- خارېدل- (۴)تباه کېدل- ضائع کېدل- بربادېدل- (۵)خورېدل- پروپېګنډه کېدل-

لوکېدلے:(لو-کې-دهٔ-لے)صفت/مفعول- جمع لوکېدلی- مؤنث لوکېدلې- وګورئ لوکېدل-

لوکېدن:(لو-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ لوکېدل-

لوکېدنګ:(لو-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ لوکېدل-

لوکېدنه:(لو-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ لوکېدل-

لوکېدونکے:(لو-کې-دون-کے)اسم فاعل- جمع لوکېدونکی- مؤنث لوکېدونکې- وګورئ لوکېدل-

لوکېدهٔ:(لو-کې-دهٔ)حاصل مصدر از دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه-

معکوس:(مَع-کُوس)صفت- کوږ- اُلټه- (عربی)-

معلم:(مُ-عَل-لِم)اسم- واحد- مذکر- علم ښودونکے- استاذ- (عربی)-

معلوم:(مَع-لُوم)صفت- (۱)علم کښې راغلے- (۲)واضح- ښکاره- څرګند- (۳)اګاه- (عربی)-

معلومات:(مَع-لو-ماتْ)اسم- جمع- مذکر- دَ معلوم جمع-

معلومښت:(مَع-لو-مښت)اسم- واحد- مذکر- علم- معلومات- معلومتیا-

معلومول:(مَع-لُو-مه-وَل)مصدر متعدی- (۱)علم کښې راوستل- (۲)لټول- پیدا کول- څرګندول-

معلومون:(مَع-لو-مه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ معلومول-

معلومونکے:(مَع-لُو-مه-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع معلومونکی- مؤنث معلومونکې- وګورئ معلومول-

معلومونه:(مَع-لو-مه-وهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ معلومول-

معلومېدل:(مَع-لُو-مې-دَل)مصدر لازم- (۱)پهٔ علم کښې راتلل- (۲)څرګندېدل- ښکاره کېدل-

معلومېدن:(مَع-لو-مې-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ معلومېدل-

معلومېدنه:(مَع-لو-مې-دهْ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ معلومېدل-

معلومېدونکے:(مَع-لُو-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع معلومېدونکی- مؤنث معلومېدونکې- وګورئ معلومېدل-

معلومېدهٔ:(مَع-لو-مې-دهْ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ معلومېدل-

معما:(مُ-عَم-ما)اسم- واحد- مذکر- (۱)پټ- (۲)اړ- (۳)ګرانه خبره- (۴)داسې خبره چې دَ رمز سره وشي-

معمار:(مَع-مارْ)اسم- واحد- مذکر- عمارت سازونکے- عمارت جوړونکے- ګلکار- مستری- (عربی)-

معماری:(مَع-ما-رِي)اسم- واحد- مؤنث- ګلکاری- مستری توب-

معمر:(مُ-عَم-مر)صفت- بوډا- دَ ډېر عمر- عمرخوړلے- (عربی)-

معمور:(مَع-مُور)صفت- (۱)ډک- (۲)آباد- (۳)بند- تاله شوے-

معموله:(مَع-مو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه خبره چې روزانه کېږی- (۲)چې عمل پرې وشي- دَ رواج مطابق- دستور- قاعده-

معمولی:(مَع-مو-لي)صفت- (۱)لږ شان- ذره شان- لکوټی- پوچے- بکسکے- (۲)رسمی-

معمه:(مُ-عَم-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اړ- معما-

معنون:(مَع-نُون)صفت- (۱)عنوان شوے- (۲)دیباچه شوے- (۳)نامزد شوے- (دَ کتاب)- (عربی)-

معنوی:(مَع-نه-وِي)صفت- (۱)معنی سره منسوب- (۲)اصلی- حقیقی- ذاتی- (۳)دننه- باطنی- (م- عربی)-

معنویت:(مَع-نه-وِي-یت)اسم- دَ معنوی کېدو حالت- حقیقت-

معنی:(مَع-نا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مقصد- اراده- (۲)مطلب- منشا- مراد- مدعا- (۳)وجه- (۴)اصلیت- (عربی)-

معه:(مه-عه)حرف- څخه- سره- (عربی)-

معیار:(مَع-یارْ)اسم- واحد- مذکر- پیمانه- اندازه- دَ تول آله- (عربی)-

معیت:(مه-عي-یَت)اسم- واحد- مذکر- ملګرتیا- همراهی- (عربی)-

معیشت:(مه-عي-شَت)اسم- ژوند- روزګار- روزی- اقتصادیات-

معیوب:(مَع-یُوب)صفت- عیب دار- (عربی)-

مغازه:(مه-غا-زه)اسم- واحد- مؤنث- لویْ دُوکان- (افغانستان)- (عربی)-

مغازی:(مه-غا-زي)اسم- واحد- مذکر- (۱)کافرانو سره جګړه- (۲)هغه جنګونه چې حضور علیه السلام پکښې پخپله موجود وو- (۳)دَ جنګ خوبی- دَ غازیانو صفت- (عربی)-

مغالطه:(مُ-غا-ل-طه)اسم- واحد- مؤنث- دوکه- فریب- مکر- (عربی)-

مغانه:(مَغا-نه)اسم- واحد- مؤنث- غمانه- دَ ورانهٔ جرړه- دَ پټانهٔ جرړه- جمع مغانې-

مغزاوه:(مَغ-زا-وه)اسم- واحد- مؤنث- اُبو کښې حل شوے صابون- دَ صابون ځګ-

مغرب:(مَغ-رِب)اسم- واحد- مذکر- نمرپرېواتهٔ اړخ-

مغربیت:(مَغ-ر-بي-یت)اسم- دَ مغرب اثر- دَ یورپ اثر-

مغرور:(مَغ-رُور)صفت- متکبر- کبر کونکے- غرور کونکے- بړانی کونکے-

مغروری:(مَغ-رُو-ري)اسم- واحد- مؤنث- غرور کونه- تکبر-

مغرونی:(مَغ-رو-ني)اسم- واحد- مؤنث- غاوري- تکبر- مغروری-

مغز:(مه-غز)اسم- واحد- مذکر- (۱)دماغ- مازغهٔ- (۲)دَ څهٔ څیز دننه حصه- (۳)عقل- (۴)جرړه- اصل- (۵)تکبر- غرور- (۶)مینځ- (۷)مغزے- نلے- (۸)دَ وچې مېوې دننه دَ خوراک څیز-

مغزن:(مَغ-زَن)صفت- (۱)مازغهٔ لرونکے- مغز لرونکے- (۲)قوی دماغ لرونکے-

مغزي:(مَغ-زِي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لمن- جولی- جوجی- تراټه (۲)چکی- زړے- زنے-

مغزی:(مَغ-زي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- څټې- غاړه-

مغزے:(مَغ-زے)اسم- واحد- مذکر- څټې- حاشیه- کناره-

مغزے:(مَغ-زے)اسم- واحد- مذکر- نلے چې خنو مېږکو کښې وی- مغز-

مغضوب:(مَغ-ضُوب)صفت- چې قهر پرې شوے وی- دَ غضب لاندې-

مغفور:(مَغ-فُور)صفت- بخښلے- مرحوم- (عربی)-

مغل:(مُ-غَل)اسم- واحد/جمع- مذکر- یو قوم چې خپل وطن یې منګولیا دے-

مغلظ:(مُ-غَل-لَظ)صفت- (۱)ږوږ- (۲)سخت- غټ- (۳)مضبوط- (۴)ګنده- پلیت- (عربی)-

مغلق:(مُغ-لَق)صفت- (۱)بند شوے- (۲)مشکل- دَ پوهېدلو دَ پاره ګران-

مغلواله:(مُ-غَل-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ مغلو حکومت- ظالمانه حکومت- استبدادی حکومت-

مغلوب:(مَغ-لُوب)صفت- شکست خوړلے- دَ غلبې لاندې- مقبوضه-

مغلوبيت:(مَغ-لُو-بی-يَت)اسم- واحد- مذکر- عاجزی- اطاعت- محکوميت- دَ مغلوبېدو حالت-

مغلی:(مُ-غُ-لی)صفت- (۱)مغل ته منسوب- (۲)دَ مغلو ابجنټ-

مغولے:(مه-غو-لے)اسم- واحد- مذکر- پالک ساګ- دَ نباتاتی نوم دَ پاره وُکورئ پالک-

مغوم:(مَغ-مُوم)صفت- غمګين- خفه- دلګير- فکرمند- (عربی)-

مغنی:(+مُ-غَن-نی)اسم- واحد- مذکر- سندرغاړے- نغمه ويونکے-

مغيلان:(مُ-غی-لان)اسم- واحد- مذکر- کيکر- يو ازغن بوټے- نباتاتی نوم دَ مېموسا يا اکېشيا (MIMOSA or ACACIA) يو قسم-

مفاد:(مه-فادّ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ فائدې ځايُ- (۲)نفع- ګټه- (عربی)-

مفادات:(مه-فا-داتّ)اسم- جمع- مذکر- دَ مفاد جمع- نفعې- ګټې- (عربی)-

مفاصله:(مه-فا-ص-له)اسم- (۱)فرق- (۲)وقفه-

مفاهمه:(مه-فا-ه-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ يو بل پهٔ خبره پوهېدنه او فېصله کونه- پهٔ خبره پوهېدنه-

مفت:(مُفتّ)صفت- (۱)بغېر قيمت- (۲)ناحق- بې فائدې- (۳)ضائع-

مفتاح:(مُف-تاح)اسم- واحد- مذکر- کُنجی- چابی- کلی-

مفتخر:(مُف-ته-خر)صفت- فخر کونکے- لاپې کونکے- لاپړ- (عربی)-

مفتوح:(مُف-تُوح)صفت- (۱)پرانستے شوے- (۲)فتح کړے شوے- (۳)هغه حرف چې پرې زور وی- (عربی)-

مفته خور:(مُف-ته-خور)صفت- مفت خور- مفت څيز خوړونکے-

مفتی:(مُف-تی)اسم- واحد- مذکر- فتویٰ ورکوُنکے- فقيه- (عربی)-

مفرد:(مُف-رَد)صفت- (۱)يوازې- تنها- (۲)يو- (۳)غېرمرکب- (۴)واحد- يګانه-.يکتا- (عربی)-

مفردات:(مُف-ر-داتّ)صفت- دَ مفرد جمع-

مفرس:(مُ-فر-رَس)صفت- هغه تورے چې لهٔ بلې ژبې نه فارسی ته راوړے شوے وی- (عربی)-

مغرور:(مَف-رُور)صفت- تښتېدلے- لهٔ قابو نه تښتېدلے- پټ شوے- (عربی)-

مفروضه:(مف-رو-ضه)صفت- فرض کړے شوې خبره- (عربی)-

مفسد:(مُف-سد)صفت- فساد کوُنکے- فسادی- (عربی)-

مفسده:(مُف-س-ده)اسم- واحد- مؤنث- جګړه- فساد- بربادی- تباهی- (عربی)-

مفسر:(مُ-فَس-سر)اسم- واحد- مذکر- (۱)تفسير کوُنکے- (۲)دَ قرآن کريم دَ آيتونو تشريح کوُنکے- (عربی)-

مفصل:(مُ-فَص-صَل)صفت- پهٔ تفصيل سره- واضح- (عربی)-

مفصلات:(مُ-فَص-صه-لاتّ)اسم- جمع- مذکر- دَ ښهر نه ګېر چاپېره علاقه- کلی وغېره- (عربی)-

مفعول:(مف-عُول)صفت- (۱)هغه څوک چې کار ورسره وشی- (۲)هغه اسم چې پهٔ جمله کښې پرې څهٔ کار شوے وی- (عربی)-

مفقود:(مَف-قُود)صفت- غېب- پټ- پناه- غائب- ورک- ورک شوے- (عربی)-

مفکر:(مُ-فَک-کر)اسم صفت- واحد- مذکر- فکر کونکے- سوچ کونکے-

مفکوره:(مف-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- نظريه- خيال- فکر-

مفلر:(مُف-لر)اسم- واحد- مذکر- ګلوبند- ګلی بند- (انګريزی)-

مفلس:(مُف-لس)صفت- غريب- محتاج- بې نوا- لاچاره- (عربی)-

مفلسی:(مُف-لې-سی)اسم- واحد- مؤنث- محتاجی- ناداری-

مفلوج:(مَف-لُوج)صفت- کوزن وهلے- دَ فالج بيمار- (عربی)-

مفلوک:(مَف-لُوک)صفت- (۱)تباه- برباد- (۲)محتاج- (عربی)-

مفهوم:(مَف-هُوم)صفت/مفعول- معنیٰ- مطلب- پوهېدنه- (۲)منشا- مدعا- اراده- (۳)پوې شوے- (عربی)-

مفيد:(مُ-فيد)صفت- فائده من- (عربی)-

مقابل:(مُ-قا-بِل)متعلق فعل/صفت- (۱)مخامخ- (۲)دشمن- مخالف- (۲)برابر- يو شان- (عربی)-

مقابله:(مُ-قا-به-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مخامخ کېدنه- (۲)برابرېدنه- (۲)مخالفت- (۴)جانج پړتال- (۵)جګړه- (۶)دَ نجوم پهٔ اصطلاح کښې يو ستورے بل ستوری ته مخامخ کېدنه- (عربی)-

مقاتله:(مُ-قا-ته-له)اسم- واحد- مؤنث- خونريزی- يو بل وژنه- قتلِ عام- (عربی)-

مقاصد:(مه-قا-صد)اسم- مذکر- دَ مقصد جمع- (عربی)-

مقاطعه:(مُ-قا-طه-عه)اسم- واحد- مذکر- تعلق ختمونه- بيلونه- ويزاری- (عربی)-

مقاله:(مه-قا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)قول- (۲)ليکلے مضمون- (۳)دَ کتاب حصه- (۴)دَ معلوماتو مفصل مضمون- (عربی)-

مقام:(مه-قامّ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ايسارېدو ځايُ- مکان- (۲)دَ کوزېدو ځايُ- (۳)محل وقوع- وخت- (۴)موسيقی کښې پړده- سرور- (۵)دَ ودرېدو ځايُ- (عربی)-

مقامات:(مه-قا-ماتّ)اسم- مذکر- دَ مقام جمع- (عربی)-

مقامات:(مه-قا-ما-ت)اسم- جمع- مذکر- حاکمه طبقه- حاکمان- (عربی)-

مقامی:(مه-قا-می)صفت- مقام سره متعلق- ځائی-

مقبره:(مَق-به-ره)اسم- واحد- مؤنث- هديره- روضه- مړيستون- مړستون- درګاه- آستان- استانه- جمع مقبرې- (عربی)-

مقبوضه:(مَق-بُو-ضه)صفت- هغه ځايُ يا څيز چې قبضه پرې شوې وی- (عربی)-

مقبول:(مَق-بُول)صفت- قبول شوے- منلے شوے- (عربی)-

مقبوليت:(مَق-بُو-لی-يَت)اسم- واحد- مذکر- منلے شوے- قبوليت- خوښی-

مقتدا:(مُق-ته-دا)اسم- واحد- مذکر- چې دَ چا پېروی کولے شی- امام- پېشوا- مذهبی مشر- رهنما- (عربی)-

مقتدر:(مُق-ته-در)صفت- اقتدار لرونکے- زورور- (عربی)-

مقتدي:(مُق-تـه-دي)صفت- اقتدار کوُنکے- دَ امام وروستو ودرېدونکے- پېروی کوُنکے-

مقتل:(مَق-تَل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ وژلو ځایْ- دَ قتلولو ځایْ- (۲)قصاب خانه- (عربی)-

مقتول:(مَق-تُول)صفت/مفعول- (۱)قتل شوے- وژلے شوے- (۲)عاشق- (عربی)-

مقدار:(مِق-دار)اسم- واحد- مذکر- (۱)اندازه- شمار- (۲)وزن- تول- (۳)ډېل ډول- (۴)تعداد- رقم- (۵)مجموعه- میزان- (عربی)-

مقدر:(مُ-قَد-در)صفت- وړومبے لیکلے شوے- (۲)هغه لفظ چې عبارت کښې موجود نهٔ وی او معنیٰ ېٔ اخستے شوی وی- (۲)قسمت- تقدیر-

مقدس:(مُ-قَد-دَس)صفت- (۱)پاک- سپېځلے- بې ګناه- (۲)نېک- صالح- (عربی)-

مقدم:(مُ-قد-دم)صفت- (۱)مخکښې شوے- (۲)وړومبے- (۲)مخکښې حصه- (۴)وُچت- (۵)واجب- ضروری- لازم- (۶)قبضه- (۷)دَ نجوم پهٔ اصطلاح کښې دَ قمر پنځویشتم منزل- (عربی)-

مقدمه:(مُ-قَد-ده-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ فوج هغه حصه چې مخکښې زلېږلے شي- (۲)مخکښې تلونکې-

مقدمه:(مُ-قه-د-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دعویٰ- استغاثه- (۲)واردات- (۲)معامله- (۴)جګړه- (۵)فېصله- (۶)دیباچه- سریزه- تمهید- (م- عربی)-

مقدود:(مق-دود)اسم- دَ جنګ دَ پاره یو فرضي کردار وړاندې کونه- یعنې چې دوه ښځې پهٔ خپلو کښې ختمول غواړي نو یوه ښځه بلې ښځې ته څهٔ کېړی یا بل شے کېږدی-

مقدور:(مَق-دُور)اسم- واحد- مذکر- (۱)قوت- طاقت- (۲)حوصله- (۲)حېثیت- ګنجائش- (۴)قابو- اختیار- (۵)وسیله- ذریعه- (۶)جرات- طاقت- (۷)دولت- خوشحالی- (۸)وس- زور- قدرت- حکومت- حکم- فرمان- سند-

مقرب:(مُ-قَر-رب)صفت- (۱)خاص ملګرے- دوست- (۲)نژدې کښېناستونکے- نژدې-

مقرر:(مُ-قَر-رر)اسم- واحد- مذکر- تقریر کوُنکے- (عربی)-

مقررکول:(مُ-قَر-رر-که-وَل)مصدر متعدی- ټاکل- وخت ټاکل- پهٔ څهٔ منصب لګول-

مقروض:(مَق-رُوض)اسم- واحد- مذکر- قرض دارے- (عربی)-

مقرے:(مَق-رے)صفت- پهٔ کم عمر کښې پخې پخې خبرې کوُنکے ملک-

مقسوم:(مَق-سوم)صفت- (۱)تقسیم شوے- (۲)هغه عدد چې تقسیم کړے شي- (۲)نصیب- حصه- تقدیر- (عربی)-

مقصد:(مَق-صَد)اسم- واحد- مذکر- هغه ځایْ چې هلته اراده وی- (۲)طلب- مدعا- منشا- اراده-

مقصود:(مَق-صُود)صفت/مفعول- غرض- مراد- منشا- مدعا- (عربی)-

مقطع:(مَق-طَع)اسم- واحد- مذکر- دَ غزل هغه وروستے شعر چې شاعر پکښې خپل تخلص راولي- (عربی)-

مقفیٰ:(مُ-قَف-فا)صفت- قافیه دار- (عربی)-

مقلد:(مُ-قَل-لَد)صفت/فاعل- (۱)تقلېد کوُنکے- مرید- (۲)نقال- پېښې کونکے- پېخمار- (۲)هغه مسلمان چې پهٔ څلورو امامانو کښې دَ یو امام پېروی کوی- (عربی)-

مقناطیس:(مق-نا-طیس)اسم- واحد- مذکر- یو قسم اُسپنه چې اُسپنه ځان طرفته راکاږی- اُسپنکش- مېګنټ- (یونانی- عربی)-

مقوله:(مه-قُو-له)اسم- واحد- مؤنث- خبره- قول- متل- ضرب المثل-

مقهور:(مَق-هُور)صفت- مغلوب- (عربی)-

مقید:(مُ-قَیْ-ید/مُ-قېد)صفت- قېد کړے- بندی- قېدی- پابند- اسیر-

مقیداً:(مُ-قے-دَن)متعلق فعل- بلا ناغه-

مقیم:(مُ-قیم)صفت- (۱)قیام کوُنکے- ودرېدونکے- (۲)قائم- (۲)هغه څوک چې دَ زمیندارو سبزی وغېره لېلاموی- (عربی)-

مقبش:(مُ-قبش)اسم- واحد- مذکر- اطلس- کناری- کیناری- جالکی- جالی- پرقېدونکې فیته چې پهٔ لوپټو باندې لګولے شي-

مکار:(مَک-کار/مه-کار)صفت- مکر کوُنکے- دوکه باز- فرېبي- فرېب ژن- (عربی)-

مکاری:(مه-کا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دوکه- فرېب-

مکالمه:(مُ-کا-له-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زباني خبرې اترې- سوال جواب- (۲)ډرامه- (۲)دَ ډرامې دَ کردارونو خپلو کښې خبرې- (عربی)-

مکان:(مه-کان)اسم- واحد- مذکر- دَ وسېدو ځایْ- ځایْ- کور- استان- استانه- (عربی)-

مکانی:(مه-کا-ني)صفت- مکان سره متعلق- خاص-

مکتب:(مَک-تَب)اسم- واحد- مذکر- دَ لیک لُست ځایْ- مدرسه-

مکتوب:(مَک-تُوب)اسم- واحد- مذکر- لیکلے- خط- چیټی- (عربی)-

مکټو:(مه-که-ټو)اسم- واحد- مذکر- هغه څوک چې دَ هېڅ کار کسب نهٔ وی- ناراسته- بې کاره- کم عقل-

مکر:(مَکر/مه-کَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دوکه- فرېب- بانه- بهانه- (۲)دورغ- ریا- (۲)نفاق- (۴)چالاکی-

مکرر:(مُ-کَر-رر)صفت/فعل- دوباره- یو ځل بیا- یو کار بار بار کونه-

مکرراً:(مُ-کَر-ره-رَن)متعدی فعل- دوباره دوباره- بیا بیا-

مکرژن:(مه-کَر-ژَن)صفت- فرېب ژن- فرېبي- مکار- مکرے- مؤنث مکرژنه-

مکرم:(مُ-کَر-رَم)صفت- معزز- بزرګ-

مکروه:(مَک-رُوه)صفت- (۱)ناسازه- (۲)قابل نفرت- (۲)هغه څیزونه چې حرام خو نهٔ وی خو نهٔ کول ېٔ بهتر وی- (فقه)-

مکرے:(مَک-رے)صفت- مذکر- مکرژن- ریاکار- مؤنث مکری-

مکرکس:(مه-کَر-ګَس)اسم- واحد- مذکر- یو مردارخور مارغهٔ- میرګن-

میرګنج- ګرګس-

مکړی:(مَک-ړی)اسم- واحد- مذکر- یو قسم سور چینجے-

مکړے:(مَک-ړے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ازغے-

مکس:(مه-کس)اسم- واحد- مذکر- قمیص- کورته-

مکسچر:(مکس-چر)صفت- (۱)لهٔ ډېرو دارو جوړه شوې دوائی چې عام طور سره د مانع پهٔ شکل کښې وی- (۲)راګډونه- (۳)امیزش- (انګریزی)-

مکسر:(مُ-کس-سر)صفت- (۱)مات شوے- (۲)دَ عرض، طول او وُچت والی حاصل ضرب- (عربی)-

مکسور:(مَک-سُور)صفت- (۱)هغه توری چې لاندې ترې زېر وی- (۲)مفرد کسر-

مکشوف:(مَک-شوف)صفت- واضح- ظاهر- ښکاره- ښکاره- (عربی)-

مکعب:(مُک-عَب)صفت- (۱)ځلورګټه- هغه شکل چې طول عرض او عمق ئې برابر وی- (۲)هغه عدد چې د یو عدد پهٔ خپلو کښې دَ درې ځله ضرب نه پس حاصل شوے وی- (عربی)-

مکک:(مه-کک)اسم- واحد- مذکر- ژمکه- مزکه-

مکمل:(مُ-کم-مل)صفت- کامل- پوره- تمام- ختم- بشپړ-

مکندور:(مه-کند-ور)صفت- طاقتور- مضبوط-

مکندی:(مه-کن-دی)اسم- واحد جمع- مؤنث- مرکنډی- مرکنډ- څپ- مرې-

مکنډ:(مه-کنډ)اسم- واحد- مذکر- څپ- غاړه- مرکنډ-

مکنډور:(مه-کنډ-ور)صفت- څټور- غټ څټے-

مکنډی:(مه-کن-ډی)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګورئ مکندی-

مکنه:(مَک-نه)صفت- زیره- (صرف د خاورې پاره مخصوص صفت)-

مکنه:(مَک-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)برقع- (۲)هغه لرګے چې پهٔ ارټ کښې ئې د کانډې پهٔ مینځ سوری کښې شلانې راټینګ کړے وی- جمع مکنې-

مکو:(مه-کو)اسم- واحد- مذکر- یو بوټے وګورئ انګورتوره- کچماچو- نباتاتی نوم سولے نم رب رم (SOLANUM RUBRUM)- (هندی- فارسی)-

مکوټ:(مه-کوټ)صفت- مذکر- سوزېدلے- سوخته- سوے- بریان-

مکه:(مُ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چاوړ- درز- دړه- (۲)سُولی- (۳)عیب- داغ-

مکهانه:(مکه-ما-نه-مکانه)اسم- واحد- مؤنث- جلوتری- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ جارکوب-

مکهی:(مکه-هی)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګے چې دَ مکنه پهٔ سر کښې لګېدلے وی-

مکیال:(مک-یال)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه لوښے چې غله وغیره ورباندې پیمانه کولے شی- (۲)پیمانه- (عربی)-

مکین:(مه-کین)اسم- واحد- مذکر- مکان کښې وسېدونکے- وسېدونکے- (عربی)-

مکېز:(مه-کېز)اسم- واحد- مذکر- ناز- ادا- نخرې- قېنج- غلشکه- غنج- خرام- جمع مکېزونه-

مکېزګره:(مه-کېز-ګهٔ-ره)صفت- مؤنث- ناز او ادا کونکې ښځه- جمع مکېزګرې-

مګ:(مګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه سورے چې پهٔ کوټه کښې دَ لوګی وتلو د پاره جوړ کړے شوے وی- موری- درځی- روشندان- (۲)دوکانچه-

مګ:(مګ)اسم- واحد- مذکر- لویه پیاله- (انګریزی)-

مګر:(مه-ګر)اسم- واحد- مذکر- د هندی شمسی کال دَ یوې میاشتې نامه چې د کتک نه پس از لهٔ پو مخکښې وی- (سنسکرت)-

مګر:(مه-ګر)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اُبو یو ادم خور ځناور- مګرمچ- داړور- (۲)دَ ښځو د یو کالی نوم-

مګر:(مه-ګر)حرف عطف- (۱)خو- (۲)لېکن- لاکن-

مګرمچ:(مه-ګر-مچ)اسم- واحد- مذکر- د اُبو یو ادم خور ځناور- مګر-

مګس:(مه-ګس)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ شهدو مچی- (۲)مچ- مچی-

مګسی:(مه-ګهٔ-سی)صفت- (۱)هغه اس چې تول وېښتهٔ ئې سپین وی او سرهٔ داغونه ورباندې وی- (۲)تور رنګ لرونکے- (۳)مچی-

مګنه:(مه-ګهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دریچه- کړکی- (۲)برقعه- جمع مګنې-

مګه:(مه-ګه)اسم- واحد- مؤنث- د چایو څښلو لویه پیالی- وګورئ مګ- (م- انګریزی)-

مل:(مل)صفت- ملګرے- دوست- انډیوال- اشنا- شریک- مرسته کونکے- جمع ملونه-

ملا:(مُ-لا)اسم- واحد- مذکر- شاید دَ مولی جوړ شوے لفظ- (۱)ښهٔ لیکونکے- (۲)عالم- فاضل- (۳)دَ جماعت امام- واعظ- زاهد- ناصح- جمع ملایان/ملیان-

ملا:(ملا)اسم- واحد- مؤنث- د کناټو او څټ پهٔ مینځ کښې دَ وجود حصه چې (سپائنل کارډ) د ملا تیر پکښې غزېدلے وی-

ملابانګ:(مُ-لا-بانګ)اسم- واحد- مذکر- دَ سحر د بانګ وخت- بانګ مال- سحر صبا- سحر وختی- سحر-

ملا بند:(مَلا-بند)اسم- واحد- مذکر- هغه شے چې ملا ورباندې تړی- ملا تړونے- ملا پټی- کمربند- جمع ملابندونه-

ملا پاړے:(مَلا-پا-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو یوه لوبه-

ملاپټی:(ملا-په-ټی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ملابند-

ملاتب:(ملا-تب)اسم- مذکر- (۱)مرسته- (۲)مضبوطیا- (۳)ورزستو خلق-

ملا تړ:(مَلا-تړ)صفت- (۱)امدادی- حمایتی- امداد کونکے- ورزستو ودرېدونکے- (۲)یار- دوست- (۳)کمربند-

ملا تړلے:(ملا-ته-ړه-لے)صفت- مذکر- (۱)کمربسته- هر وخت تیار- دَ جنګ د پاره تیار- (۲)جنګیالے- بهادر-

ملا تړونے:(ملا-ته-ړو-نے)صفت- وګورئ ملاتړ-

ملاتړے:(ملا-ته-ړے)صفت- مذکر- (۱)مستعد- کمربسته- (۲)ملګرے-

ملاتوب:(م-لا-توب)اسم- واحد- مذکر- د ملا کېدو حالت- د ملا منصب- د علميت اظهار-

ملاتوغے:(ملا-تو-غے)اسم صفت- هغه سړے چې له يخنی يا له کومې وجې ې ملا کړه زی-

ملاچرکک:(م-لا-چر-ګک)اسم- واحد- مذکر- يو قسم مارغه- ملاچرچک- کړی چرګ- بربرک- هدهد-

ملاځی:(ملا-ځي)اسم- واحد- مؤنث- هغه د لرګی ټوټه چې يوم کښې لګېدلې وی او د چم کنستو په وخت پرې په پښه زور ورکولے شي-

ملاح:(مل-لاح)اسم- واحد- مذکر- ناخدا- ماڼګے- کشتی چلونکے- (عربی)-

ملاحت:(مه-لا-حت)اسم- واحد- مذکر- مالګين توب- نمکينی-

ملاحظه:(مه-لا-حه-ظه مه-لا-ظه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ملازه- معائنه- کتنه- مشاهده- (۲)غور- توجه- (۳)مروت- (۴)ريا- (۵)شرم- (په دېو معنو کښې متروک دے)- (عربی)-

ملاخوږی:(ملا-خو-ږی)اسم- د ملا درد- د ملا خوږ-

ملاخوږے:(ملا-خو-ږے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ملا درد لرونکے- (۲)کوږی- مفعول-

ملادزله:(م-لا-دز-له)صفت- وګوری ملاطوره-

ملازکے:(ملا-ز-کے)اسم صفت- (۱)سست- کاهل-

ملازکر:(مه-لاز-کر)صفت- (۱)رياکار- (۲)پاسداری کونکے-

ملازم:(م-لا-زم)اسم- واحد- مذکر- خادم- نوکر- (عربی)-

ملازمت:(م-لا-ز-مت)اسم- واحد- مذکر- نوکری- خادمی- (عربی)-

ملازه:(مه-لا-زه)اسم- واحد- مؤنث- ملاحظه- (۱)پاسداری- (۲)رعايت- (۳)مخ مروت- (۴)شرم- ام- عربی- ملاحظه)-

ملاست:(ملاست)صفت- نماست- پروت- غزېدلے-

ملاستل:(ملاس-تل)مصدر- غزېدل- پرېوتل- نماستل-

ملاستلے:(ملاس-ته-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ملاستلي- مؤنث ملاستلې- وګوری ملاستل-

ملاستنه:(ملاس-ته-نه)حاصل مصدر- وګوری ملاستل-

ملاستونکے:(ملاس-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ملاستونکی- مؤنث ملاستونکې- وګوری ملاستل-

ملاشينے:(ملا-شي-نے)اسم- واحد- مذکر- بې همته- کاهل- سست-

ملاطوره:(م-لا-طو-ره)صفت- د ملا په شان- ښه سړے- صوفی-

ملاغاښے:(ملا-غا-ښے)اسم- واحد- مذکر- فقره- جمله- کرښه- (افغانستان)-

ملاقات:(م-لا-قات)اسم- (۱)يو بل سره ليدنه کاتنه کونه- (۲)پېژندګلی- واقفيت- (۳)جېل ته د قېدی ليدلو له تلل-

ملاقاتی:(م-لا-قا-تي)صفت- ليدنه کاتنه کونکے- دوستی يا مينې کولو له راتلونکے- (۲)د جېل قېدی سره ليدل کتل کونکے-

ملاقی:(م-لا-قي)اسم صفت- ملاوېدونکے- ملاقات کونکے-

ملاکوتے:(م-لا-کو-تے)صفت- واحد- مذکر- زړوکے ملا- ملاکے- چنبے- طالب- (طنزاً)-

ملاکے:(م-لا-کے)صفت- واحد- مذکر- وګوری ملاکوتے-

ملال:(مه-لال)اسم- واحد- مذکر- (۱)خفګان- غم- (۲)صفت- خفه- غمژن- فکرمند-

ملاله:(مه-لا-له)صفت- مؤنث- د ملال مؤنث- د سترګو او کتلو صفت چې ورته د مرو او ناز او ادا معنی ورکوی-

ملالے:(مه-لا-لے)صفت- محبوب- معشوق- ملولا-

ملالې سترګې:(مه-لا-لې-ستر-ګې)اسم صفت- جمع- مؤنث- ښانسته او زړه راکښونکې سترګې- مرې سترګې- خمارې سترګې-

ملالۍ:(مه-لا-لۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ښانسته ښځه- (۲)محبوبه- ياره-

ملاماتے:(ملا-ما-تے)صفت- (۱)د کار غل- (۲)چې ملا ئې ماته وی-

ملاماتے:(ملا-ما-تے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ټوپک چې په ملا راماتيږی- دوه نليز چرې دار- شاټ ګن-

ملامت:(مه-لا-مت)صفت- ګرم- شرمنده- پيکه- کچه شوے- (عربی)-

ملامتوب:(مه-لا-مت-توب)اسم- واحد- مذکر- ملامته- ملامتيا- شرمندګی- پيکه توب-

ملامتول:(مه-لا-مه-ته-ول)مصدر متعدی- پيکه کول- کچه کول- شرمنده کول- ګرمول- شرمول- پړکول-

ملامتونکے:(مه-لا-مه-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ملامتونکی- مؤنث ملامتونکې- وګوری ملامتول-

ملامتونه:(مه-لا-مه-ته-وه-نه)حاصل مصدر- وګوری ملامتول-

ملامته:(مه-لا-مه-ته)اسم صفت- واحد- مذکر مؤنث- (۱)وګوری ملامت- (۲)ګرمتيا- ملامتوب- پړکېدنه-

ملامتيا:(مه-لا-مت-تيا)اسم- واحد- مؤنث- د ملامت کېدو حالت- ملامتوب-

ملامتېدل:(مه-لا-مه-تې-دل)مصدر لازم- پيکه کېدل- کچه کېدل- شرمنده کېدل- ګرمېدل- شرمېدل- پړکېدل-

ملامتېدن:(مه-لا-مه-تې-دن)حاصل مصدر- وګوری ملامتېدل-

ملامتېدنه:(مه-لا-مه-تې-ده-نه)حاصل مصدر- وګوری ملامتېدل-

ملامتېدونکے:(مه-لا-مه-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ملامتېدونکی- مؤنث ملامتېدونکې- وګوری ملامتېدل-

ملامتېده:(مه-لا-مه-تې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګوری ملامتېدل-

ملاوستنے:(ملا-وس-ته-نے)اسم- واحد- مذکر- ملابند- ملاتړونے- کمربند- جمع ملاوستنی-

ملاوشمه:(م-لا-وش-مه)صفت- ملاطورے- ملاېولے- د ملا په څېر- د ملا په شان- د ملا غندې- جمع ملاوشمې-

ملائکه:(مه-لائ-که)اسم- واحد- مؤنث- فرشته- فرښته- جمع ملائکې-

ملانم:(مه-لا-نم)صفت- پوست- نازک- نرم و نازک- بردبار- (عربی)-

ملائمت:(مه-لا-ئ-مت)اسم- واحد- مذکر- پوستوالے- نرمي- نازکي- موافقت- سازگاری-

ملانی:(مه-لا-ني)اسم- واحد- مؤنث- پېروے- بالانی- (م- فارسی)-

ملایان:(م-لا-یان)اسم- مذکر- د ملا جمع-

ملبوس:(مل-بوس)اسم- واحد- مذکر- (۱)د اغستلو جامې- (۲)صفت- پهٔ جامو کښې نغښتے-

ملبه:(مل-به)اسم- واحد- مؤنث- د ړنګ شوی دېوال وغېره خاورې کتې او بلا بتر چې سره ګډوډ شي- خټېله- کړکې- جمع ملبې-

ملت:(مل-لت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دين- مذهب- (۲)قوم- (عربی)-

ملتمس:(مل-ته-مس)صفت- غښتونکے-

ملتوب:(مل-توب)اسم- واحد- مذکر- رفاقت- دوستي- ملګرتيا- (افغانستان)-

ملتوی:(مل-ته-وی)صفت- ځنډېدلے- ځنډولے- التوا کښې پاتې شوے-

ملته:(مل-ته)صفت- (۱)ډېره مهينه- (۲)بېکاره- (۳)هغه سکه چې پهٔ بازار کښې نهٔ چلېږی سره هم دا لفظ وئېلے شي-

ملتيا:(مل-تيا)اسم- واحد- مذکر- کډون- ملګرتيا- ملتوب-

ملتې:(م-لتې)اسم- واحد- مذکر- د غاړې د پاره يو مُفرد حکيمي دارو چې خوند ئې خوږ وی- خوږه ولې-

ملتې:(م-لتې)اسم- واحد- مذکر- د يو کښتې شپېتمه حصه- منتې-

ملتهي:(م-له-تهي)اسم- واحد- مؤنث- ملتې- مولتې- خوږه ولې-

ملحد:(مل-حد)صفت- الحاد کونکے- بې دينه- کافر- (عربی)-

ملحق:(مل-حق)صفت- لګېدلے- ګنډلے- منسلک- يوځاې- (عربی)-

ملحوظ:(مل-حوظ)صفت- لحاظ ساتلے شوے- لحاظ کړے شوے- خيال کښې ساتلے-

ملخ:(م-لخ)اسم- واحد/جمع- مذکر- ټوقا- يو قسم حشره چې پهٔ فصلونو کښې پيدا کيږی- ملخے-

ملخص:(مل-لخ-خص)صفت- خلاصه شوے- خلاصه- اختصار- (فارسی)-

ملخوزه:(مل-خو-زه)اسم- جمع- مؤنث- يو قسم ساګ چې پخولے شي او دانې ئې د سترګو دارو کښې پکارېږي- يو حکيمي دارو- مېتری- نباتاتی نوم ټرګو نېلم فېنم ګرېکم (TRIGONELLUM FOENUMGRAECUM)-

ملخولی:(مل-خو-لی)اسم- واحد- مؤنث- ماغوت- ماقوت- زيړنے- د زيړ رنګ لرونکې يو قسم فېرنی-

ملخی:(مل-خي)اسم- واحد- مؤنث- د ملخ ماده- ملخ-

ملخے:(مل-خے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ملخ-

ملزم:(مل-زم)اسم- واحد- مذکر- چې پرې الزام لګېدلے وی- تورن- (عربی)-

ملزوم:(مل-زوم)صفت- لازم شوے- چې لهٔ يو بله جدا کېدے نهٔ شي- د حال شريک- (عربی)-

ملعون:(مل-عون)صفت- لعنتي- مردود- رټلے شوے- (عربی)-

ملغلره:(مل-غه-له-ره)اسم- واحد- مؤنث- مرغلره- لعل-

ملغوبه:(مل-غو-به)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه څيزونه چې سره ګډ شوی وی- (۲)د مات ګډ څيزونو انبار- (۳)ګند- (۴)ګنده مانع لرونکے- جمع ملغوبې- (ترکی)-

ملک:(مه-لک)اسم- واحد- مذکر- ملائک- فرشته- فرښته- (عربی)-

ملک:(مه-لک)اسم- واحد- مذکر- د کلی نمردار- د کلی مشر- جمع ملکان- ملکانان-

ملک:(مه-لک)اسم- واحد- مذکر- باچا- سلطان- (عربی)-

ملک:(ملک)اسم- واحد- مذکر- (۱)جائيداد- (۲)مال اسباب- (عربی)-

ملک:(ملک)اسم- واحد- مذکر- (۱)وطن- سلطنت- (۲)راج- (عربی)- جمع ملکونه-

ملکوت:(مه-له-کوت)اسم- واحد- مذکر- د فرښتو جهان- عالم ارواح-

ملکوتی:(مه-له-کو-تي)صفت- ملکوت سره منسوب-

ملکونړی:(مل-کون-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- يو قسم بوټے- وګورئ مارکونړی/مالکونړی-

ملکه:(مه-له-که)اسم- واحد- مؤنث- صفت- خاصيت-

ملکه:(مه-له-که)اسم- واحد- مؤنث- د باچا ښځه- جمع ملکې-

ملکی:(مه-لهٔ-کي)اسم- واحد- مذکر- مشري-

ملکی:(مه-لهٔ-کي/مل-کي)اسم- واحد- مؤنث- د ملک مؤنث- د ملک لور يا ښځه وغېره-

ملګرتوب:(مل-ګر-توب)اسم- واحد- مذکر- دوستي- حمايت- رفاقت- اشنائی- اشناتوب-

ملګرتيا:(مل-ګر-تيا)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ملګرتوب-

ملګری:(مل-ګهٔ-ری)اسم- جمع- مذکر- د ملګرے جمع-

ملګری:(مل-ګهٔ-ری)اسم- واحد- مؤنث- لاس امداد- مرسته- ملاتړ- پابګيرنه- ملګرتيا-

ملګری ټلګری:(مل-ګهٔ-ری-ټل-ګهٔ-ری)اسم- جمع- مذکر- ياران- دوستان- ملګری-

ملګرې:(مل-ګهٔ-رې)اسم- واحد- مؤنث- انډيواله- اشناګی- اشنايښه- مله- دوسته-

ملګرے:(مل-ګهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)رفيق- دوست- اشنا- (۲)اسره-

ملل:(مهٔ-لل)مصدر لازم- ملګرے کېدل- استوګے کېدل- ساکن کېدل- قرارېدل- کښېناستل- د قافلې ايسارېدل-

ملل:(مه-لل)مصدر متعدی- پهٔ لوبو کښې د يو بل ملګرتيا منل- منل-

ملل:(م-لل)اسم- جمع- مذکر- د ملت جمع- قومونه- مذهبونه- (عربی)-

مللی:(مهٔ-له-لي)اسم- واحد- مؤنث- سستي- تعطل-

مللی:(مهٔ-لهٔ-لي)صفت/مفعول- ملستی- يو ځاې ملګری شوی-

ملم:(مه-لم)اسم- واحد- مذکر- ملهم- (مفغن)-

ملمع:(مُ-لَم-مع)صفت- د زرو په اُبو ښائسته- (عربی)-
ململ:(مل-مل)اسم- واحد- مذکر- يو قسم پسته سپينه کپړه-
ملہ:(مه-لهٔ-له)اسم- واحد- مذکر- ناراسته توب- تذبذب-
ملمونه:(مه-له-مو-نه)اسم- مذکر- د ملم جمع- ملهمونه-
ملمه:(مل-مه)اسم- رنګ پوري کونه- کاشي کونه-
ملنځه:(مه-لن-ځه)اسم- واحد- مؤنث- هغه پټي يا پړي چي ملا پري تړلے شي- ملابند- کمربند-
ملنډه:(مه-لن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- مذاق- مسخره- ټوقه- وشته- نخوال- پېغور-
ملنډے:(مه-لن-ډے)صفت- مسخره باز- ټوقي- مذاقيه-
ملنګ:(مه-لنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مذهبي ګدا- درويش- قلندر- بې پروا- مست فقير- (۲)سوالګر- سوال کونکے- فقير- (۳)د کوره وتلے- (۴)دينا پرېښودونکے- (۵)بې هوشه- بې خوده- (۶)مفلس- (هندی)-
ملنګه:(مه-لنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- د ملنګې تخم چي شربتونو کښې استعمالولے شي- تخم ملنګه-
ملو:(مه-لو)اسم- واحد- مذکر- (۱)د انګورو خېلي- د انګورو تاک- (۲)صفت- د مل جمع- ملګري- دوستان-
ملو:(مه-لو)اسم- واحد- مذکر- بوري- بوجي- غندے- سټه- غونډے-
ملوب:(مه-لوب)اسم- واحد- مذکر- (۱)خوله- (۲)نري وينه- خوناب- زوي- زوزبه- سرامني- ملوبه-
ملوبه:(مه-لو-به)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ملوب-
ملوټارے:(مه-لو-ټا-رے)صفت- وګورئ ملوټے-
ملوټے:(مه-لو-ټے)صفت- (۱)د مل تصغير- (۲)هيجړا- بې غېرته- نرښځے- ملے- ملوټارے- (هندی- مالا)-
ملوث:(مُ-لو-وَث)صفت- (۱)راګير- ککړ- (۲)ګنده- ناپاک- پليت- لړلے-
ملودل:(مه-لو-دل)مصدر- منل- ملګرے جوړول- ملګرے کېدل-
ملودن:(مه-لو-دن)حاصل مصدر- وګورئ ملودل-
ملودونکے:(مه-لو-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ملودونکي- مؤنث ملودونکې- وګورئ ملودل-
ملودنه:(مه-لو-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ملودل-
ملوک:(مه-لوک)اسم- مذکر- (۱)د ملک جمع- ملکان- بادشاهان- (۲)يو قسم کپړه-
ملوک:(مه-لوک)صفت- (۱)معشوق- محبوب- (۲)ښکلے- ښائسته- (۳)پاک- سوچه-
ملول:(مه-لول)صفت- خفه- غمژن- (عربی)-
ملون:(مَلون)اسم- واحد جمع- مذکر- ملګرتيا- (افغانستان)-
ملونه:(ملو-نه)اسم- جمع- مذکر- تېزي- واکې- چلب- جلو- دانه- لګام- ملونې- ملونے-

ملونے:(م-لو-نے)اسم- جمع- مذکر- ملونه-
ملون:(مه-لون)اسم- واحد- مذکر- (۱)مالګه- (۲)صفت- تريخ-
ملوول:(مه-لو-ول)مصدر متعدی- (۱)د لوبي د پاره د مشر لوبغاړي انتخاب کول- خوښول- (۲)اسم- واحد- مذکر- ملګرے-
ملوون:(مه-لو-وون)حاصل مصدر- وګورئ ملوول-
ملوونکے:(مه-لو-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ملوونکي- مؤنث ملوونکې- وګورئ ملوول-
ملوونه:(مه-لو-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ملوول-
ملوه:(مل-وه)اسم- واحد- مذکر- د انګورو تاک- ملو-
مله:(مهٔ-له)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم وَنه- وله-
مله:(مله)اسم- واحد- مؤنث- نشانه- جلب- پرنده کان- د مرغابئ مصنوعي شکل چي د لرګي يا ګياه نه جوړولے شي- (افغانستان)-
مله:(مله)اسم- جمع- مذکر- ملګري- دوستان-
ملهټې:(مل-مه-ټې)اسم- واحد- مؤنث- مَلټې- خوره زلې-
ملهم:(مل-هم)اسم- واحد- مذکر- يو قسم دوائي- مرهم- ملم- (فارسی)-
ملی:(مل-لي)صفت- ملت ته منسوب- قومي- (عربی)-
ملیا:(مل-يا)صفت- مل- يوځاي- واصل-
ملیا:(مليا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ملا- جمع ملياګانې-
ملیار:(مل-يار)اسم- واحد- مذکر- ماليار- باغبان- باغوان- جمع ملياران-
ملیح:(مه-ليح)صفت- نمکين- مالګين- ښائسته- هغه ښکلے چي تورسکاې وي-
ملیزه:(مه-لي-زه)اسم- واحد- مؤنث- ملازه- ملاحظه- جمع مليزې-
ملیریا:(مه-لے-ري-يا)اسم- واحد- مؤنث- سره لړي تبه- موسمي تبه- (اطالوی)-
ملیشا:(مه-لے-شا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ مليشيا-
ملیشیا:(مه-ليش-يا)اسم- واحد- مؤنث- مليشا- (۱)نيم باقاعده فوځ- (۲)يو قسم کپړه چي رنګ ئې سليټي وي- (۳)صفت- سليټي رنګ-
ملی:(مُ-لي)اسم- واحد جمع- مؤنث- وګورئ مولي-
ملے:(مه-لے)صفت- ايجړا- بې ختو- ملوټے- ملوټارے- (هندی- مالا)-
ملے:(مهٔ-لے)اسم- واحد- مذکر- ملګرے- دوست- جمع ملي-
مم:(مم)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو په ژبه ميوه- خوږ څيز يا د مور تے (سينه)- ممي- جمع ممونه-
ممات:(مه-مات)اسم- جمع- مذکر- مرګېدنه- مرګے- وفات- مرګ-
ممالک:(م-ما-لک)اسم- جمع- مذکر- د مملکت جمع- ډېر ملکونه-
ممانعت:(م-ما-نه-عت)اسم- واحد- مذکر- بنديز- بندش- منع کونه-
ممانه:(م-ما-نه)اسم- واحد- مؤنث- يوه وَنه از د هغې ميوه- مماني- نباتاتي نوم سيګرټيا اپوزټي فوليا (SAGERTIA OPPOSITI FOLIA)-
ممانې:(م-ما-نې)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ممانه-
ممتاز:(مم-تاز)صفت- (۱)امتياز لرونکے- (۲)معزز- اعلی- افضل- (عربی)-

ممتحن:(مُم-ته-حن)اسم- واحد- مذکر- امتحان اخستونکے- (عربی)-
ممټی:(مُم-ټِي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- کوټې ته د ختونکیو پوړیو په سر جوړه وړه شان کوټه چې پکښې دروازه لګېدلې وی- (ش- پنجابی)-
ممد:(مُ-مد)صفت- مدد کونکے- (عربی)-
ممدوح:(مَم-دُوح)صفت- تعریف کړے شوے- موصوف- چې صفت يې شوے وی- (عربی)-
ممرېز:(مَم-رېز)اسم- واحد- مذکر- مهمېز- د سوارهٔ پوندې سره لګېدلے یو مېخکے چې آس له پرې پونده ورکوی- (فارسی- مهمېز)-
ممړه:(مَم-ړه)صفت- چپه- پسته-
ممزوج:(مم-زُوج)صفت- ګډوډ- حل شوے- یو بل سره یوځاې شوے-
ممغوړن:(مَم-غو-ړن)صفت- ګنده- پلیت- خیرن-
ممکن:(مُم-کن)صفت- د کېدو قابل- کېدونے- کېدونکے- (عربی)-
ممکنات:(مُم-ک-نات)اسم- جمع- د ممکن جمع- هغه کارونه چې کېدے شی-
مملانی:(مَم-لا-نِي)اسم- واحد- مؤنث- مومیانی- ممانی- یو قسم دارو چې د ماتو هډوکو د رغولو د پاره استعمالولے شی- سلاجیت-
مملکت:(مُم-له-کت)اسم- واحد- مذکر- حکومت- بادشاهت- (عربی)-
ممنوع:(مَم-نوع)صفت- (۱)منع شوے- (۲)ناجائز- د قانون خلاف-
ممنون:(مَم-نون)صفت- منت بار- احسان مند- شکرګزار-
ممنونیت:(مَم-نو-نی-یت)اسم- واحد- مذکر- احسان مندی- شکرګزاری-
ممنه:(مه-مهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- ممڼه- دانی- دئ مور- رضاعی مور- دایه-
ممڼ:(مه-مڼ)صفت- مړاوے-
ممڼه:(مه-مهٔ-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- وګوری ممنه-
مموسی:(مه-مو-سي)اسم- جمع- مذکر- د ټانګو ونه او مېوه- ټانګو-
ممولہ:(مه-مو-له)اسم- واحد- مؤنث- د ماشومانو په ژبه مېوه- ممی- مېوه- ثمر-
ممی:(مه-مي)اسم- واحد- مؤنث- وګوری مومیا-
ممیره:(مه-می-ره)اسم- واحد- مؤنث- د کورکمان په شان یوه دوانی چې د بینایی د پاره ډېره مفیده ده- (فارسی)-
ممیزے:(مه-می-زے)اسم- واحد- مذکر- کشمش- مویز-
من:(مَن)اسم- واحد- مذکر- (۱)خاطر- اراده- زړهٔ- (۲)تکل- مقصد- (هندی)-
من:(مَن)لاحقه- د مند مخفف چې د مالک معنې ورکوی لکه شتهٔ من- (فارسی مند)-
من:(مَن)اسم- واحد- مذکر- د یوې ونې ژاوله چې بنی اسرائیلو ته د نعمت په طور ورکړے شوې وه-
من:(مَن)اسم- واحد- مذکر- یو وزن چې مختلف ملکونو کښې مختلف دروندوالے لری.افغانستان کښې من اتهٔ پونډه (څلور سېره) او پاکستان کښې اتیا پونډه (څلوېښت سېره) وی- (عبرانی- عربی)-

منا:(مه-نا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جونګړه چې په ځنګل یا پټو کښې جوړه شوې وی- (۲)هغه دالان چې د انګور خوربدو د پاره جوړ شوے وی- چوپال- (۳)په ونه کښې جوړه شوې جاله چې ترې د فصل څوکی کولے شی- جمع مناګانې-
مناجات:(مه-نا-جات)اسم- مذکر- (۱)دعا- التجا- عرض- (۲)هغه نظم چې د خداې تعریف او خپله عاجزی پکښې بیان شوې وی- (عربی)-
منادی:(مُ-نا-دی)صفت- آواز کونکے- اعلان کونکے- ډنډورچی- (عربی)-
منار:(مُ-نار)اسم- واحد- مذکر- د "نور" ظرف مکان- مینار- د رڼا- برج-
مناره:(مُ-نا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)منار- لوړ ځاې- وچت مقام- (۲)د یو پسول نوم-
منارې:(مُ-نا-رې)اسم- جمع- مؤنث- د جماعتونو دنګې څوکې- مینارونه-
مناسب:(مُ-نا-سب)صفت- موزون-
مناسبت:(مُ-نا-س-بت)اسم- واحد- مذکر- موزونیت- د موزون کېدو حالت-
مناصب:(مه-نا-صب)اسم- جمع- مذکر- د منصب جمع- رتبې- عهدې- (عربی)-
مناظره:(مُ-نا-ظه-ره)اسم- (۱)بحث مباحثه- تکرار- (۲)هغه علم چې پکښې د بحث قواعد بیان وی- (عربی)-
منافست:(مُ-نا-ف-ست)اسم- یو بل نه د وړاندې کېدو کوشش-
منافع:(مُ-نا-فع)اسم- جمع- مذکر- د منفعت جمع- ګټې- فائدې- (عربی)-
منافق:(مُ-نا-فق)صفت- (۱)هغه څوک چې په زړهٔ يې یوه وی او په خلهٔ بله- (۲)په اسلام کښې ظاهره مسلمان او په باطن کښې کافر- (عربی)-
منافقت:(مُ-نا-ف-قت)اسم- واحد- مذکر- د منافق عمل- د منافق حالت- ریاکاری- منافقی- مکاری- (عربی)-
منافقی:(مُ-نا-ف-قي)اسم- واحد- مؤنث- وګوری منافقت-
منافی:(مُ-نا-فی)صفت- خلاف- ضد- (عربی)-
مناقشه:(مُ-نا-قه-شه)اسم- واحد- مؤنث- بحث مباحثه- تکرار- جګړه- (عربی)-
مناګی:(مه-نا-ګی)اسم تصغیر- واحد/جمع- مؤنث- د منا اسم تصغیر- وګوری منا-
منال:(مه-نال)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دولت- مال- جائیداد- (۲)هغه ځاې چې څهٔ فائدې ترې حاصلیږی- لکه باغ- دوکان- جائیداد وغیره-
منای:(مُ-نای)اسم- واحد- مذکر- لوړ- سوټے- کوتک- ډانګ-
منبر:(مم-بر)اسم- واحد- مذکر- په جماعت کښې هغه ځاې چې امام پرې کښېنی او مسئلې کوی-
منبع:(مم-بع)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د اوبو راوتو ځاې- چینه- (۲)د اوبو خزانه- (۳)د وتو ځاې-
منت:(من-نت)اسم- واحد- مؤنث- (۱)احسان- نیکی- سلوک- (۲)شکریه- (۳)عاجزی- زاری- خوشامد- (م- عربی)-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکوړ)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-ډې-دهٔ)

منت:(مه-نت)اسم- واحد- مذکر- منښته- نذر-

منت بار:(من-نت-بار)اسم صفت- احسان مند- شکرګزار-

منتخب:(مٌن-ته-خب)صفت- (۱)چڼ شوے- (۲)غوره-

منتخبول:(مٌن-ته-خه-به-وَل)مصدر متعدی- (۱)چڼ کول- (۲)غوره کول- خوښول-

منتخبون:(مٌن-ته-خه-به-وَن)حاصل مصدر- وګورئ منتخبول-

منتخبوُنکے:(مٌن-ته-خه-به-وُون-کے)اسم فاعل- جمع منتخبوُنکي- مؤنث منتخبوُنکې- وګورئ منتخبول-

منتخبونه:(مٌن-ته-خه-به-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ منتخبول-

منتخبېدل:(مٌن-ته-خه-بې-دَل)مصدر لازم- (۱)چڼ کېدل- (۲)غوره کېدل- خوښېدل-

منتخبېدن:(مٌن-ته-خه-بې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ منتخبېدل-

منتخبېدنه:(مٌن-ته-خه-بې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ منتخبېدل-

منتخبېدونکے:(مٌن-ته-خه-بې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منتخبېدونکي- مؤنث منتخبېدونکې- وګورئ منتخبېدل-

منتخبېده:(مٌن-ته-خه-بې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ منتخبېدل-

منتر:(من-تَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)د وید څۀ حصه- (۲)جادو- ټوڼه- سحر- دم- افسون- (سنسکرت)-

منتری:(مَن-ته-ری)اسم صفت- جادوګر- کوډمار-

منتشر:(مٌن-ته-شر)صفت- (۱)اخوا دېخوا- لرې برې- (۲)متفرق- تتر بتر- تیت پرک- (عربی)-

منتظر:(مٌن-ته-ظر)صفت- انتظار کوُنکے- پۀ انتظار- امېدوار- لاره کتونکے- (عربی)-

منتظم:(مٌن-ته-ظم)صفت- (۱)انتظام کوُنکے- اهتمام کوُنکے- (۲)کفایت شعار- (عربی)-

منتفع:(مٌن-ته-فع)صفت- فائده حاصلوُنکے- ګټه حاصلوُنکے-

منتقل:(مٌن-ته-قل)صفت- یو ځائ نه بل ځائ ته تللے- یو کور نه بل کور ته تللے-

منتقم:(مٌن-ته-قم)صفت- انتقام اخستونکے- بدله اخستونکے-

منټ:(م-نټ)اسم- واحد- مذکر- د یوې ګنټې شپېتمه حصه- ملټ- مینټ-

منج:(منج)اسم- مذکر- یو قسم واښۀ چې بوټي ترې جوړولے شي- نباتاتی نوم سَکَ هارم مُنجا روکس بی (SACCHARUM MUNJA ROX.B)-

منجاری:(من-جا-ری)اسم- واحد- مذکر- بنجاری- د ښځو د ضرورت سامان خرڅوُنکے-

منجاریتوب:(من-جا-ری-توب)اسم- واحد- مذکر- د منجاری پېشه- بنجاریتوب-

منجاور:(من-جا-وَر)اسم- واحد- مذکر- د خانقاه یا زیارت خادم- منجور- مجاور-

منجرکے:(منج-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- ښائسته کټ-

منجره:(من-جه-ره)اسم- واحد- مؤنث- کلی- غوټۍ- شګوفه- جمع منجرې- (م- سنسکرت)-

منجری:(منج-ری)اسم- واحد- مؤنث- منجرکے- ښائسته کټ-

منجقے:(من-جه-قے)اسم- واحد- مذکر- کُس کښې د غوښې ټکړه-

منجل:(من-جَل)صفت- پېچیده- ګران- مشکل-

منجلاب:(من-جه-لاب)اسم- واحد- مذکر- ګنده اوبۀ- سخا اوبۀ- (فارسی)-

منجله:(من-جه-له)اسم- واحد- مؤنث- منجیله- موړه- بالښتک- بالښت ګوټے-

منجم:(م-نج-جم)اسم- واحد- مذکر- د علم نجوم عالم- نجومی-

منج منج:(منج-منج)صفت- نېغ نېغ- مخکښې مخکښې-

منجنیق:(من-جه-نیق)اسم- واحد- مذکر- د قلعه ماتولو د پاره د پخوانی زمانې یو مشین چې درانۀ کاڼي به ئې پرې غرځول- مچوغنه- مچوغنه- مچنوغه- (عربی)-

منجور:(من-جه-وَر)اسم- واحد- مذکر- مجاور-

منجوړا:(من-جو-ړا)صفت- راغنډ شوے- (۲)بېکاره- (۳)هیجړا- نامرد-

منجوله:(من-جو-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جاله- (۲)هغه دېګ چې پکښې چائ پخولے شي-

منجه:(من-جه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وړه تار چې ماشومان پرې ګوډۍ پۀ هوا کښې خېژوي- د ګډۍ تار- مانجه- (۲)د مچوغنې د کاڼي یا لوټې کېښودلو برخه (خله)- کاسه-

منجيټ:(من-جیټ)اسم- واحد- مذکر- د حکیمي دارو یو توکے-

منجیزه:(من-جي-زه)اسم- واحد- مؤنث- د معجزه وران تلفظ- معجزه-

منجیله:(من-جي-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د منګې د لاندې د وښو جوړه یوه غنډه غنډې کړې چې جینکې ئې د اوبو راوړلو د پاره پۀ سر ږدي- (۲)نغاړی- (۳)د جولاګانو منجیله چې د سپنسو نه جوړه وي او د کولالانو د کاسې لاندې پرته وي- (۴)صفت- تاؤ راتاؤ پیچیده- ګران-

منجېدل:(من-جې-دَل)مصدر لازم- (۱)مخکښې وروستو حرکت کول- (۲)جنبش کول- ځائ پۀ ځائ حرکت کول- هر وخت مخې ته کېدل-

منجېدن:(من-جې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ منجېدل-

منجېدنه:(من-جې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ منجېدل-

منجېدونکے:(من-جې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منجېدونکي- مؤنث منجېدونکې- وګورئ منجېدل-

منجېده:(من-جې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ منجېدل-

منجے:(من-جے)صفت- بې لکۍ- چې لکۍ ئې پرېکړے شوې وي- بونډے- بونډک- بونجے-

منځ:(منځ)صفت- مینځ- میانځ- وسط- مرکز-

ئ (ځي-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ۍ (پیا-لۍ)، ے (تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

منخاله:(مَن-خا-له)اسم- واحد- مؤنث- خاله- جاله- منخوله- منخولے- بنخوله-

منخغرے:(منځ-غه-رے)اسم- واحد- مذکر- د دوو غرونو تر منځه لار- دره-

منځکوره:(منځ-کو-ره)صفت- مینځنی- منځومیانه-

منځګړی:(منځ-ګه-ړی)اسم- واحد- مؤنث- دربمګړی توب- ثالثی-

منځګړے:(مَن-ځه-ګه-ړے)صفت- منصف- ثالث- دربمګړے-

منځکلې:(مَنځ-کهٔ-لې)اسم- واحد- مؤنث- منځه ګُته- منځنی ګُته-

منخل:(مَن-خل)مصدر متعدی- وینخل- مینځل- صفاکول- اُچه کول-

منخلے:(مَن-خه-لے)صفت- وګوری اُرغمک-

منځمے:(مَن-ځه-مے)صفت- منځنے-

منځمې:(مَن-ځه-مې)صفت- مؤنث- د منځمے مؤنث- منځنے-

منځنے:(مَن-ځه-نے)صفت- مینځنے- وسطی- مرکزی-

منځوال:(مَنځ-وال)صفت- دربمګړے- ثالث- (افغانستان)-

منخوله:(مَن-خو-له)اسم- واحد- مؤنث- وګوری منخاله-

منخولے:(مَن-خو-لے)اسم- واحد- مذکر- وګوری منخاله-

منځومانه:(مَن-ځو-ما-نه)اسم- واحد- مذکر مؤنث- (۱)منځینه- مینځنے- په منځ کښې- (۲)بې طرفه- اعتدال-

منځوی:(مَن-ځه-وی)صفت- مینځنی- مینځمی-

منځوی میاشت:(مَن-ځه-وی-میاشت)اسم- واحد- مؤنث- د میانې میاشت- ذیقعده-

منځوے:(مَن-ځه-وے)صفت- مذکر- مینځنے- وسطی-

منځه:(مَن-ځه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د یو بوټی نامه- (۲)د مینځ نه- (۳)مینځه- وسطی-

منځی:(مَن-ځی)اسم- واحد- مؤنث- د غرهٔ په غاړه کښې لار-

منځینه:(مَن-ځی-نه)صفت- مینځنی- وسطی-

منځېدل:(مَن-ځې-دل)مصدر لازم- وګوری منځېدل- (غېر مستعمل)-

منځېدنه:(مَن-ځې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګوری منځېدل-

منځېدونکے:(مَن-ځې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منځېدونکی- مؤنث منځېدونکې- وګوری منځېدل-

منځېدهٔ:(مَن-ځې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګوری منځېدل-

منچل:(مَن-چل)اسم- واحد- مذکر- د شوخ سور رنګ لرونکے یو قسم چینجے- قرمز-

منحرف:(مَن-حه-رف)صفت- واپس ګرځېدونکے- باغی- ستنېدونکے- سرکش- مرتد- (عربی)-

منحصر:(مَن-حه-صر)صفت- موقوف- مشروط- مطابق- متعلق- (عربی)-

منحنی:(مَن-حه-نی)صفت- (۱)خوږند- کوږ- (۲)نرے- لاغر- کمزورے- (عربی)-

منحوس:(مَن-حُوس)صفت- بدبخت- بدنصیب- مکروه- خراب- سپېرهٔ-

مند:(مَند)اسم- واحد- مذکر- د سېلاب لاره-

مند:(مَند)لاحقه- من- لاحقه چې د مالک معنې ورکوی لکه دولت مند- (فارسی)-

مندارو:(مَن-دا-رو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم واښهٔ-

منداړو:(مَن-دا-ړو)اسم- واحد- مذکر- وګوری منداټو-

منداغ:(مَن-داغ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم واښهٔ چې پاڼې ئې یشولے شی او د وجود د دردونو لرې کولو د پاره ګټلے شی او هم پرې مالش کولے شی-

مندان:(مَن-دان)اسم- واحد- مذکر- د وَنې ښاخ-

منداټو:(مَن-دا-ټو)اسم- واحد- مذکر- ګنده بوټے- یو بوټے چې په غنمو او شفتلو وغېره کښې کیږی- (۲)د ماستو شاربلو د پاره د لرګی جوړه یوه آله-

مندته:(مَن-دهٔ-ته)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم خرمانی- زردالو- د پرونس ارمی نیاکا (PRONUS ARMEMACA L) د خاندان یو وَنه او د هغې مېوه-

مندتې:(مَن-دهٔ-تې)اسم- واحد- مؤنث- خرمانی-

مندر:(مَن-در)اسم- واحد- مذکر- د هندوانو د عبادت ځائې- جمع مندرونه-

مندرج:(مَن-ده-رج)صفت- درج شوے- لیکلے- مندرجه-

مندرو:(مَن-ده-رو)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پرچال- د قلعه دېوال- (۲)د دېوال په سر د موږو یو قطار-

مندړی:(مَن-ډړی)اسم- واحد جمع- مؤنث- (۱)د غوړونو یو کالے- ړنړی- والی- (۲)کوټی- ګتمه- په ګته د اچولو کالے-

مندړے:(مَند-ړے)صفت- ټیټ قد لرونکے- اړورے- ټیټکے-

منډړ:(مَن-ډړ)اسم- واحد- مذکر- یو مضبوط غټ لرګے چې نور لرګی پرې د پاسه ږدی او جاله پرې جوړ وی-

مندسه:(مَن-ده-سه)اسم- واحد- مذکر- اصل- نژاد-

مندکه:(مَن-دهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)زړے- د بادام، زردالو وغېره زړے- (۲)د غوځ دسته-

مندو:(مَن-دو)اسم- واحد- مذکر- مولی- تربه-

مندوب:(مَن-دوب)صفت- نمائنده- هغه څوک چې د څهٔ خاص کار د پاره نمائنده ولېږلے شی- (عربی)-

مندیل:(مَن-دیل)اسم- واحد- مذکر- پټکے- لنګی- دستار- (عربی)-

مندې:(مَن-دې)اسم- جمع- مؤنث- مېندې- میاندې-

منډ:(مَنډ)صفت- خاموش- چپ- ساکت-

منډ:(مَنډ)اسم- واحد- مذکر- (۱)په واوره کښې تلې لاره- (۲)نقش قدم- ګام- پل- د پښو لار- د پل نښې- (۳)پته- تالاش- تلاش-

منډ:(مَنډ)تابع مهمل- د غنډ تابع مهمل-

منډاچغ:(مَن-ډا-چغ)اسم- واحد- مذکر- بانی چغ-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(نو-کا-ره)، زبر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ړو-بې-دهٔ)

منداس:(مَن-داس)صفت- هغه څاروی چي يو ښکر يې مات شوی وي- کنډی-
منداڼ:(مَن-داڼ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دالان- برنډه- دهليز- (۲)غاښور- (۳)د اس د څټ د يو ځای نوم- (۴)جندرا-
مندخلی:(مند-خو-لی)صفت- چپ- خاموش- بې ژبې-
منډس:(مَن-ډَس)اسم- واحد- مذکر- پنډوس- منډوس-
منډل:(مَن-ډَل)مصدر متعدی- (۱)په زور ډننه کول- داخلول- ننه باسل- (۲)چاپې کول-
منډلی:(مَن-ډَه-لی)صفت مفعول- وګوری منډل-
منډنه:(مَن-ډَه-نه)حاصل مصدر- وګوری منډل-
منډو:(مَن-ډو)اسم- واحد- مذکر- (۱)دالان- څپر- هغه کوټګۍ چې اخلی پخلی پکښې کولی شي- د سوري د پاره جوړه کوټګۍ- بټۍ- عارضي دالان- د بوسو او وښو نه جوړ ځای- (۲)مزل-
منډو:(مَن-ډو)اسم- واحد- مذکر- د بوټي بېخ- مونډ-
منډوان:(منډ-وان)اسم- واحد- مذکر- هغه لرګی چې د مهيانو نيولو د پاره اُبو ته اچولی شي-
منډوس:(مَن-ډوس)اسم- واحد- مذکر- (۱)ګنبد- (۲)ګول څيز- (۲)پټکی- پګړۍ- (۴)هغه کپړه چې په دستار کښې استعماليږي- (۵)پنډوس- پنډزسکی- ګولۍ- مردکی- مردک- غنډوری- (۶)د پنډ يا ګيډۍ د ورلو د پاره د سر نه تاو کړی شوی څادر-
منډوسه:(مَن-ډو-سه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم پګړۍ- لويه پګړۍ- درکته- پګړۍ-
منډوکی:(مَن-ډو-کی)اسم تصغير- منډ- د بوټي بېخ-
منډولی:(مَن-ډو-لی)اسم- وروکی او منظم شی-
منډونکی:(مَن-ډون-کی)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګوری منډل-
منډوهل:(منډ-وه-هل)مصدر متعدی- تکل کول-
منډه:(مَن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- دز- تېز تګ-
منډه:(مَن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- لار- د قدم نښه- پل-
منډی:(مَن-ډه-ی)اسم- واحد جمع- مؤنث- د تجارت ځای- منډۍ- جمع منډېانې- (هندی)-
منډيچغ:(مَن-ډی-چغ)اسم- واحد- مذکر- وګوری بانې چغ-
منډيرس:(مَن-ډی-رس)صفت- ناراسته- سست- کاهل-
منډيل:(مَن-ډيل)اسم- لويه پګړۍ- منديل- دستار-
منډې تړې:(مَن-ډې-تړ-ړې)اسم- مؤنث- (۱)دو راډو- منډې رامنډې- تګ راتګ- (۲)کوشش- سعی- (۳)بې فائدې کوشش-
منډې رامنډې:(مَن-ډې-را- مَن-ډې)اسم- مؤنث- وګوری منډې تړې-
منډۍ:(مَن-ډۍ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د لنډۍ تابع مهمل- (۲)وګوری منډی-
منډی:(مَن-ډی)اسم- مذکر- وګوری مونډی-

منزاښی:(مَن-زا-ښی)اسم- واحد جمع- مذکر- يوه ميوه-
منزل:(مَن-زل)اسم- واحد- مذکر- هغه ځای چې ورته انسان رسېدل غواړي- مقصد- (عربي)-
منزه:(مُ-نز-زه)صفت- پاک- له عيبونو نه پاک- صفا-
منږک:(منږ-رک)اسم- واحد- مذکر- د مږي مذکر- مږک- موږک-
منږکوری:(منږ-ره-کو-ری)اسم- واحد- مذکر- مږکوری- د منږک يا مږي بچی- جمع منږکوري-
منستل:(مه-نس-تل)مصدر متعدی- اقرار کول- يوه خبره يا کار منل- اقبال جرم کول-
منسو:(مَن-سو)اسم- واحد- مؤنث- د بيزو، شادو د پاره د ماشومانو نوم-
منسوب:(مَن-سوب)صفت- (۱)نسبت لرونکی- متعلق- (۲)چنغول- وګوری چنغله- مؤنث منسوبه-
منسوخ:(مَن-سوخ)صفت- رد شوی- نسخ شوی- ختم شوی-
منسوخول:(مَن-سو-خه-ول)مصدر متعدی- ردول- ختمول- ردکول-
منسوخونکی:(مَن-سو-خه-وون-کی)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منسوخونکي- مؤنث منسوخونکې- وګوری منسوخول-
منسوخونه:(مَن-سو-خه-وه-نه)حاصل مصدر- وګوری منسوخول-
منسوخېدل:(مَن-سو-خې-دل)مصدر لازم- رد کېدل- ختمېدل-
منسوخېدنه:(مَن-سو-خې-ده-نه)حاصل مصدر- وګوری منسوخېدل-
منسوخېدونکی:(مَن-سو-خې-دون-کی)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منسوخېدونکي- مؤنث منسوخېدونکې- وګوری منسوخېدل-
منسوخېده:(مَن-سو-خې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګوری منسوخېدل-
منش:(مه-نش)الاحقه- چې کوم لفظ سره راشي نو د طبيعت لرونکی، عادت لرونکی، خوی لرونکی، خصلت لرونکی معنی ورکوی- (فارسي)-
منشا:(مَن-شا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د پيدا کېدو ځای- (۲)وجه سبب- (۳)اراده- مطلب- مقصد- (عربي)-
منشور:(مَن-شور)اسم- واحد- مذکر- (۱)شاهي حکم- پروانه- (۲)د چا سياسي جماعت اعلان- (۳)فرمان- اعلان- (۴)هغه شکل چې سرونه يې يو شان يو مومره او يو بل سره متوازي او پېړې ضلعې لرونکی وي او ارخونه يې متوازی الاضلاع جوړ وي- (جيوميټري)- هم د دې شکل يو د ښيښې مجسم چې د رڼا څړيکه پکښې خوره وره شي- (فزکس)- (۵)تتر بتر- (۶)غوړېدلی-
منشي:(مُن-شي)اسم- واحد- مذکر- (۱)مرزا- ميرزا- بابو- کلرک- (۲)سکتر- سکرټري- سيکرټري- جمع مُنشيان- (عربي)-
منشيات:(مُ-نش-شي-يات)اسم- جمع- نشه کونکي څيزونه (له نشې په عربي طريقه جوړ شوی لفظ)- (عربي)-
منښت:(مه-نښت)اسم- واحد- مذکر- منښته- نذر- نذرانه- نياز-

ځ (څې-رل)، ږ (ږې-ره-ول)، ی (پيا-لی)، ټ (ټن-ډی) تفصيل د پاره وګوری تشريحات صفحه ۱

منښته:(مه-ښن-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ منښت-

منښتې:(مه-ښن-تې)اسم- جمع- مؤنث- د منښته جمع- نذرانې- خیراتونه-

منصب:(مَن-صَب)اسم- واحد- مذکر- عهده- مرتبه- رتبه- (عربی)-

منصبدار:(مَن-صَب-دار)صفت- عهده دار- منصب لرونکے-

منصف:(مُن-صِف)اسم- واحد- مذکر- (۱)د دیوانی عدالت یو جج- (۲)انصاف کونکے- عادل- انصاف کرندے- د انصاف خاوند- (۳)د جغ د مینځ مغه غوټه چې هر خم په توله کښې ساتي- (عربی)-

منصفي:(مُن-ص-فې)اسم- واحد- مؤنث- د منصف کار او عهده-

منصوب:(مَن-صُوب)صفت- (۱)ودربدلے- نیغ- قائم- (۲)مغه تورے چې پرې زبر وی-

منصوبه:(مَن-صو-به)اسم- واحد- مؤنث- سکیم- اراده- پروژه-

منطق:(من-طِق)اسم- واحد- مذکر- مغه علم چې په قطعي دلیلونو حق حق او ناحقه ناحقه ثابتوی- (۲)دنیا- (۳)جره- لهجه- فصاحت- (عربی)-

منطقه:(من-ط-قه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د ملا ترلو کپړه- (۲)مغه فرضی خط چې د زمکې نه چاپېره لکه د پټکی راتاؤ دے- (۳)علاقه- (عربی)-

منظر:(من-ظَر)اسم- واحد- مذکر- (۱)د نظر ځائ- (۲)نظاره- د سیل ځائ- (۳)مخ- شکل- (۴)د نظر حد- (۵)کړکی- سورے- (۶)لوړ مکان- (عربی)-

منظره:(من-ظه-ره)اسم- واحد- مؤنث- منظر- نظاره- نقشه- سین- جمع منظرې- (افغانستان)-

منظم:(مُ-نظ-ظَم)صفت- (۱)په تار کنډلے- (۲)موزون کلام- (۳)مغه څیز چې په انتظام سره وی- (عربی)-

منظور:(مَن-ظُور)صفت- لیدلے شوے- منلے شوے- خوښ کړے شوے- قبول شوے-

منظورول:(مَن-ظو-ره-وَل)مصدر متعدي- منل- قبلول- اجازت ورکول-

منظورونکے:(مَن-ظُو-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منظورونکي- مؤنث منظورونکې- وګورئ منظورول-

منظورونه:(مَن-ظُو-ره-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ منظورول-

منظوری:(مَن-ظُو-ري)اسم- واحد- مؤنث- قبلونه- اجازت ورکونه-

منظورېدل:(مَن-ظُو-رې-دَل)مصدر لازم- قبلېدل- اجازت ورکېدل-

منظورېدنه:(مَن-ظُو-رې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ منظورېدل-

منظورېدونکے:(مَن-ظُو-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منظورېدونکي- مؤنث منظورېدونکې- وګورئ منظورېدل-

منظورېده:(مَن-ظُو-رې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ منظورېدل-

منظوم:(مَن-ظُوم)صفت- (۱)منسلک- ترلے- (۲)نظم کړے- په اشعارو کښې وئیلے-

منع:(مه-نع)صفت- (۱)چې اجازت ئې نه وی- (۲)چې قدغن پرې لګېدلے وی- (۳)ممانعت-

منع کول:(مَ-نع-که-وَل)مصدر متعدي- (۱)اجازت نه ورکول- (۲)دعوت- بلنه- میلمستیا- ست- د روټې دعوت ورکول- (اصل محاوره روټې منع کول)-

منعقد:(مُن-عه-قد)صفت- مقرر شوے- قائم شوے- (عربی)-

منعکس:(مُن-عه-کس)صفت- (۱)عکس قبلونکے- (۲)اړولے- سرنګون- (عربی)-

منفي:(مَن-فی)صفت- ایستلے شوے- تفریق کړے شوے-

منقار:(من-قار)اسم- واحد- مذکر- مښوکه- (عربی)-

منقسم:(مُن-قه-سم)صفت- وېشلے- وېشلے شوے- (عربی)-

منقش:(مُ-نق-قش)صفت- نقش شوے- نقشین- کښیده- کشیده-

منقطع:(مُن-قه-طع)صفت- قطع کېدونکے- فیصله کېدونے- (عربی)-

منقل:(من-قل)اسم- واحد- مذکر- انګیټې- مجمر- (عربی)-

منقوط:(مَن-قوط)صفت- نقطې لرونکے- ټکی لرونکے- (عربی)-

منقول:(مَن-قول)صفت- (۱)نقل شوے- (۲)ذکر شوے- (۳)له یو ځائ نه بل ځائ ته وړلے شوے- (عربی)-

منقی:(مُ-نق-قا)اسم- واحد- مؤنث- د انګورو یو خاص قسم چې وُچ کړے شی- (۲-صفت)صفا- پاک- (عربی)-

منکت:(مَن-کَت)متعلق فعل صفت- د من په حساب- د من په حساب نرخ-

منکتی:(مَن-که-تي)اسم- واحد- مذکر- مزدور- دهقان- چې د منکت په حساب مزدوری ورکولے شی-

منکر:(مُن-کر)صفت- انکار کونکے- انکاری- ګمراه- نامنونکے-

منکرنکیر:(مُن-کر-نه-کیر)اسم- جمع- مذکر- دوه فرښتې چې په قبر کښې د مرده نه سوال ځواب کوی- انکیر منکیر- نکیرین-

منکرول:(مَن-که-ره-وَل)مصدر متعدي- په انکار اماده کول- په انکار مجبورول-

منکرونکے:(مَن-که-ره-وُون-کے)اسم فاعل- وګورئ منکرول-

منکرونه:(مَن-که-ره-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ منکرول-

منکرېدل:(مَن-که-رې-دَل)مصدر لازم- انکاری کېدل-

منکرېدنه:(مَن-که-رې-ده-نه)حاصل مصدر- وګورئ منکرېدل-

منکرېدونکے:(مَن-که-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع منکرېدونکی- مؤنث منکرېدونکې- وګورئ منکرېدل-

منکرېده:(مَن-که-رې-ده)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ منکرېدل-

منکے:(من-کے)اسم- واحد- مذکر- د وروځو ترمینځه ځائ-

منګ:(مَنګ)اسم- واحد- مذکر- په کمره، کوټه کښې د لوګی وتو موری- د کمرې ارته حصه چې اسمان ترې ښکاری-

منګ:(مَنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)قد- عمر- قد قامت- (۲)غندې- مانند- (۳)مشابهت- یوشان والے- (۴)موده- عمر-

منګ:(مَنګ)اسم- واحد- مذکر- د زنانو د یو کالی نامه چې د تندی د پاسه پروت وی- (م- هندی)-

زبر"(خ-بهٔ-ره)، زورکے"(شل)، پېش"(تو-کا-ره)، زېر"(ک-تاب)، جزم"(شکون)، ة"(ز-ره)، ۀ"(یو-بې-دۀ)

منک:(منک)اسم- واحد- مذکر- (۱)د بزو کډو یوه عامه بیماری- (۲)هغه خټه چې کلکه شوې وی-

منک:(منک)صفت- پریشان- سرګردان- حیران-

منکاچه:(مَنک-کا-چه)اسم- واحد- مؤنث- نوکه- دَ پیشو او دغه شان دَ نورو ځناورو پنجه- منکاره- منکچه-

منکاره:(مَنک-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- نوکاره- منکاچه- دَ پیشو یا دَ بل ځناور دَ نوکونو حمله- چونګاره- ټونګاره-

منکاښه:(منک-کا-ښه)اسم- واحد- مؤنث- درې ښاخې- غاښې- هغه درې غاښونه لرونکې آله چې واښې پرې الوخوی-

منکال:(مَنک-کال)اسم- واحد- مذکر- (۱)انکیټي- منقل- (۲)دَ فصل رېبلو لوې لور-

منکنیاره:(مَنک-نیا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ انارو بوټے-

منکخ:(منک-کَخ)اسم- واحد- مؤنث- ږمنځ- هغه آله چې سر پرې ږمنځولے شي- ږومنځ-

منکخول:(منک-کَهٔ-خه-وَل)مصدر متعدی- پهٔ ویښتو کښې ږمنځ وهل-

منکچه:(مَنک-چه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ منکاچه-

منکر:(مَنک-کَر)اسم- واحد- مذکر- مار- منګرے-

منکر:(مُ-کَر)اسم- واحد- مؤنث- مکر- دَ یوې هندی میاشتې نوم چې دَ پو لهٔ میاشتې مخکښې او دَ کتک نه پس وی-

منکر:(مَنک-کَر)حرف استدراک- دَ مګر وران شکل-

منګرے:(مَنک-کَهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ مارانو یو قسم-

منګړ:(مَنک-کَړ)اسم- واحد- مذکر- کټمل- منګڼ- منګوړ- مونګڼ-

منګړیته:(مَنک-ړی-ته)اسم- واحد- مؤنث- ټپیر- بنګړیته-

منګړیتی:(منک-ړی-تی)اسم- جمع- مؤنث- ټپیر-

منګز:(مَنک-ګز)اسم- واحد- مؤنث- ږومنځ- ږمنځ-

منګس:(مَنک-ګس)اسم- واحد- مذکر- پیدائشي طور باندې پهٔ بدن دَ خړ رنګ نښې چې زیات تر پهٔ مخ راځیږي-

منګسی:(مَنک-کَهٔ-سی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بنګسه- هغه سیلی چې شګې الوزوی-

منګل:(مَنک-ګل)اسم- واحد- مؤنث- څنګل- پنجه- جمع منګلې-

منګلوسه:(مَنک-لو-سه)اسم- واحد- مؤنث- ږولی-

منګڼ:(مَنک-ګڼ)اسم- واحد- مذکر- کټمل- منګړ- مونګڼ- منګوړ-

منګو:(مَنک-ګو)صفت- احمق- نادان- کم عقل- بې وقوف-

منګوټے:(مَنک-ګو-ټے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے منګے- دَ منګی تصغیر-

منګور:(مَنک-ګور)اسم- واحد- مذکر- دَ سپی بچے (کوترے) چې سترګې یې لا نهٔ وی غړولې-

منګور:(مَنک-ګور)اسم- واحد- مذکر- مار- منګرے- منګیر-

منګورخورکه:(مَنک-ګور-خو-ره-که)اسم- واحد- مؤنث- مارخورکه-

منګوړ:(منک-ګوړ)اسم- واحد- مذکر- کټمل- کهټمل- منګڼ- خمندکه- منګونے- مونګڼ- منګړ-

منګونے:(مَنک-ګو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ منګوړ-

منګیر:(مَنک-ګیر)صفت- (۱)بوخت- اخته- لګیا- (۲- اسم)منګور-

منګیرېدل:(مَنک-ګی-رې-دَل)مصدر لازم- مصروف کېدل- بندېدل-

منګیل:(منک-ګیل)اسم- واحد- مذکر- دَ کبانو نیولو کُنډه-

منګے:(مَنک-ګے)اسم- واحد- مذکر- ګړے- دَ ټیکری یا مسینو غټه منهٔ غړی لرونکے لوښے چې عموماً پکښې دَ څښلو اُبهٔ ساتلے شي-

منل:(مه-نَل)مصدر متعدی- (۱)ایمان راوړل- منظورول- قبلول- اقرار کول- (۲)احسان مند کېدل- احسان باندې قائله کېدل- (۳)تسلیمول-

منلے:(مه-نهٔ-لے)صفت- قبول- مسلم- محترم-

من من:(مَن-مَن)اسم صوت- مذکر- دَ خوشحالی اواز- مې مې-

من منیا:(مَن-مَن-یا)اسم- واحد- مؤنث- خپله رایې جوړونه- خپله مرضی کونه-

منن:(مه-نَن)حاصل مصدر- وګورئ منل-

مننه:(مه-نهٔ-نه)حاصل مصدر/اسم- (۱)وګورئ منل- (۲)تشکر- شکریه- مهربانی-

مننے:(مه-نه-نے)صفت- پرهېزګار- متقی- عابد- منونکے-

منو:(مه-نو)اسم- واحد- مذکر- زړګے- (سنسکرت)-

منوال:(مَن-وال)اسم- واحد- مذکر- دستور- طریقه- (عربی)-

منور:(مُ-نو-وَر)صفت- نورانی- پرقېدونکے- رون- (عربی)-

من و عن:(مُ-نو-عن)صفت- هو بهو- ټول-

منول:(مه-نه-وَل)مصدر متعدی- قراره ول- دلاسه کول- وګورئ ایمنول-

منونکے:(مه-نون-کے)اسم فاعل- وګورئ منل-

منونه:(مه-نو-نه)اسم- جمع- مذکر- دَ من جمع-

منه:(مه-نه)اسم- واحد- مؤنث- منا- څېر- کوپله- جونګنه- داړهٔ- کوړی-

منهائی:(من-ما-ئی)اسم- واحد- مؤنث- تفریق- وضع- مجره-

منیٔ:(من-یٔ)اسم- جمع- مؤنث- می- مهې- ماش- نباتاتی نوم فیسولس ریډیئټس (PHASEOLUS RADIATUS)-

منی:(مه-نی)اسم- واحد- مؤنث- هغه سپینې لاړټنې اُبهٔ چې دَ انزال پهٔ وخت کښې خارجیږی- نطفه- مایه- مردی- (عربی)-

منی:(مه-نی)اسم- واحد- مؤنث- غرور- تکبر- لوئی- خودی- (فارسی)-

منیر:(مُ-نیر)صفت- تابان- رون- رڼا ورکونکے- ښکاره- تابنده- (عربی)-

منی وېل:(مه-نی-وېل)اسم- واحد- مذکر- منے- دَ خزان موسم- منېل- (منے- خزان- وېل- وخت)- (پنجابی- هندی)-

منیجر:(مُ-نی-جَر)اسم- واحد- مذکر- منتظم- مهتمم- (انګریزی)-

منېل:(مه-نېل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ منی وېل-

مڼ:(مَڼ)اسم- واحد- مذکر- میره-

ناتهٔ:(نا-تهٔ)حاصل مصدر- لهٔ نتل مصدر نه حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه-

ناټ:(ناټ)اسم- واحد- مذکر- شوق- خواهش- رغبت- محبت- مينه-

ناټک:(نا-ټک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ تماشې ځاې- تېټر- (۲)تماشه- ډرامه- لوبه- (۲)وګوړئ ناټکے-

ناټکه:(نا-ټهٔ-که)صفت- مذکر/مؤنث- بې ارامه- ناقلار- مضطرب-

ناټکی:(نا-ټهٔ-کي)اسم- واحد- مؤنث- بې ارامي- ناقلارتيا- ناقلاري- اضطراب-

ناټکی:(نا-ټهٔ-کي)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم نقش يا ګلکاري چې دَ ټغر يا لمڅې په منځ کښې جوړولے شي-

ناټکے:(نا-ټهٔ-کے)اسم- واحد- مذکر- اداکار- ايکټر- لوبه يا ډرامه کونکے-

ناټه:(نا-ټه)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم سپين تندے لرونکې کوتره- نټه- جمع ناټې-

ناټېرلے:(نا-ټې-رهٔ-لے)صفت- کمزورے- ناتوان- مړخېن- بې دسته- مړکندے- مؤنث ناټېرلې- جمع ناټېرلي-

ناټي:(نا-ټي)اسم- واحد- مؤنث- هغه لرګے چې دَ اوښ په پوزه کښې اچولے شوے وي او مُهار ورپورې ترلے شي- نته-

ناټے:(نا-ټے)صفت- لټ- ناراسته- سست- ناراست- مؤنث ناټې- جمع ناټي-

ناثر:(نا-ثر)صفت- نثر ليکونکے- نثرنګار-

ناجاڼ:(نا-جاڼ)صفت- ناجانه- بې خبره- ناواقف- ناخبره-

ناجانه:(نا-جا-نه)صفت- مذکر/مؤنث- وګوړئ ناجاڼ-

ناجائز:(نا-جا-ئز)صفت- ناجائزه- چې جائز نهٔ وي- نامناسب-

ناجائزه:(نا-جا-ئ-زه)صفت- مذکر/مؤنث- وګوړئ ناجائز-

ناجغ:(نا-جغ)صفت- ناجغه- وګوړئ ناړک-

ناجنس:(نا-جنس)صفت- (۱)بې جنسه- بې ذاته- جنس نهٔ لرونکے- (۲)کمينه- رذيل- بې اصله-

ناجو:(نا-جو)اسم- واحد- مذکر- دَ صنوبر ونه- نباتاتي نوم (PINUS ROX BURGHII)- جمع ناجوګان-

ناجوړ:(نا-جوړ)صفت- ناجوړه- ناساز- بيمار- رنځور-

ناجوړتيا:(نا-جوړ-تيا)اسم- واحد- مؤنث- بيماري- ناسازي- رنځورتيا- ناجوړي-

ناجوړه:(نا-جو-ړه)صفت- مذکر/مؤنث- وګوړئ ناجوړ-

ناجوړي:(نا-جو-ړي)اسم- واحد- مؤنث- وګوړئ ناجوړتيا-

ناجه:(نا-جه)اسم- واحد- مؤنث- ځانګه- ناجي- جمع ناجې-

ناجي:(نا-جي)صفت- نجات موندونکے- خلاصے موندونکے- معاف کړے شوے-

ناجي:(نا-جي)اسم- واحد- مؤنث- وګوړئ ناجه-

ناچ:(ناچ)اسم- واحد- مذکر- (۱)نڅا- ګډا- رقص- ډانس- ناڅ- (۲)وګوړئ منډوس-

ناچاپ:(نا-چاپ)صفت- هغه چې چاپ شوے نهٔ وي- ناطبع- ناچاپه-

ناچاپه:(نا-چا-په)صفت- مذکر/مؤنث- وګوړئ ناچاپ-

ناچار:(نا-چار)صفت- لاچار/ناڅار- (۱)عاجز- معذور- مجبور- (۲)بې وسه- محتاج- خوار- غريب- ناچاره-

ناچاره:(نا-چا-ره)صفت- مذکر/مؤنث- لاچاره- وګوړئ ناچار-

ناچاري:(نا-چا-ري)اسم- واحد- مؤنث- لاچاري- ناڅاري- (۱)عاجزي- معذوري- مجبوري- (۲)بې وسي- غربت- نيستي-

ناچاق:(نا-چاق)صفت- (۱)ناجوړ- بيمار- (۲)بې خونده- بدمزه- (۳)کمزورے- مانده- ټپ-

ناچاقي:(نا-چا-قي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناجوړتيا- بيماري- (۲)بې خوندي- بدمزګي- (۳)کمزورتيا- مانده توب- ټپوالے-

ناچل:(نا-چل)صفت- (۱)بې رواجه- غير مروج- (۲)کوټه سکه- نهٔ چلېدونکې سکه-

ناڅ:(ناڅ)اسم- واحد- مذکر- ناچ- ګډا- رقص- نڅا- ډانس-

ناڅاپه:(نا-څا-په)متعلق فعل- سمدستي- ناګهانه- ناڅاپي- په بې خيالۍ سره-

ناڅاپي:(نا-څا-پي)صفت/متعلق فعل- دَ ناڅاپه سره متعلق- وګوړئ ناڅاپه-

ناڅار:(نا-څار)صفت- وګوړئ ناچار-

ناڅاري:(نا-څا-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګوړئ ناچاري-

ناڅکر:(ناڅ-کر)صفت- ګډېدونکے- ګډا کونکے- ناچ کونکے-

ناڅل:(نا-څل)مصدر لازم- ګډېدل- نڅا کول- رقص کول- ناچ کول- نڅېدل-

ناڅيز:(نا-څيز)صفت- بې کاره- بې فائدې- ناچيز-

ناحق:(نا-حق)صفت- (۱)دَ حق خلاف- (۲)بې مناسبه- نامناسب- (۳)بې فايدې-

ناحقژن:(نا-حق-ژن)صفت- ارام خور- ناحقجن- مؤنث ناحقژنه-

ناحيه:(نا-حي-يه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ملک- علاقه- (۲)دَ زمکې ټوټه- (۳)ساحل- دَ سمندر غاړه- (۴)طرف- اړخ- ډډه-

ناخبر:(نا-خه-بر)صفت- هغه چې خبر ورته نهٔ وي- ناواقف- بې خبر- ناجاڼ- مؤنث ناخبره-

ناختلے:(نا-خه-تهٔ-لے)صفت- هغه چې ختلے نهٔ وي- جمع ناختلي- مؤنث ناختلې-

ناخدا:(نا-خ-دا)اسم- واحد- مذکر- کشتي چلونکے- ماڼکے- ماڼے-

ناخلف:(نا-خ-لف)صفت- نالائق ځوئ- بې ادب او نافرمان زوئ-

ناخنه:(نا-خ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګوړئ نخونه-

ناخوال:(نا-خوال)صفت- (۱)نامناسب- بې سمونه- (۲)سپکه او شرمناکه خبره- (۳)دَ ټوقو خبره- مسخره- (۴)زړهٔ ماتے- هغه څوک چې زړهٔ يې نهٔ مر څهٔ موړ وي- ناخواله-

ناخواله:(نا-خوا-له)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناخوال-

ناخوالي:(نا-خوا-لي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نامناسبتوب- بې سمونتوب- (۲)مجبوري- ناخوښي- (۳)زړۀ مړېدنه- زړۀ توربدنه-

ناخوان:(نا-خوان)صفت- ناخواند- ناخوانده- (۱)بې تعليمه- پۀ ليک لُست نۀ پوهېدونکے- جاهل- (۲)بې دعوته راغلے- بې بلنې راغلے-

ناخواند:(نا-خواند)صفت- وګورئ ناخوان-

ناخوانده:(نا-خوان-ده)صفت- واحد- مذکر/مؤنث- وګورئ ناخوان-

ناخورا:(نا-خو-را)صفت- ناپاک- ناولے- چټل-

ناخورسند:(نا-خور-سند)صفت- خفه- دلګير- پرېشان- ناخوښ-

ناخوښ:(نا-خوښ)صفت- وګورئ ناخورسند-

ناخوښه:(نا-خوه-ښه)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناخورسند-

ناخوښي:(نا-خوه-ښي)اسم- واحد- مؤنث- خفګان- پرېشاني- ناراضتوب-

ناخونه:(نا-خو-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د انګورو پۀ خېلي کښې نرے تار- (۲)د سترګو يو قسم بيماري- نخونه- ناخُنه- جمع ناخونې-

نادار:(نا-دار)صفت- هيڅ نۀ لرونکے- غريب- عاجز- نېستمند- لاچار-

نادارتوب:(نا-دار-توب)اسم- واحد- مذکر- هيڅ نۀ لرنه- غريبي- عاجزي- نېستي- ناداري-

ناداري:(نا-دا-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نادارتوب-

نادان:(نا-دان)صفت- کم عقل- ناپوه- ساده- مؤنث نادانه-

نادانسته:(نا-دا-نس-ته)متعلق فعل/صفت- د دانسته ضد- بې ارادې- پۀ ناپوهي سره- غېر ارادي-

نادانه:(نا-دا-نه)صفت- (۱)د نادان مؤنث- (۲)يو ذات له ښاروني-

ناداني:(نا-دا-ني)اسم- واحد- مؤنث- کم عقلتوب- ناپوهي- ساده توب-

نادر:(نا-در)صفت- (۱)ناياب- کمياب- (۲)ښۀ- غوره- عجيبه-

نادرست:(نا-درست)صفت- د درست ضد- ناسم- نامکمل- وران- نيمګړے-

نادم:(نا-دم)صفت- پښېمان- ستومان- پۀ خپلو کړو شرمنده-

نادوده:(نا-دو-ده)صفت- غېر مهذب- لۀ رسم و رواج نه ناخبر- نادېده- لالچي-

نادودي:(نا-دو-دي)اسم- واحد- مؤنث- لۀ رسم و رواجه ناخبري- غېر مهذب توب- نادېده توب-

نادېدک:(نا-دي-دک)صفت- وګورئ نادېده-

نادېده:(نا-دي-ده)صفت- نادوده- (۱)ناليدلے- (۲)وږسترګے- اروا وږے- لالچي- (۳)کم اصل- رذيل- نادېدک-

نادېده توب:(نا-دي-ده-توب)اسم- واحد- مذکر- د نادېده جوړېدو حالت-

نار:(نار)اسم- واحد- مذکر- اور- (عربي)-

نار:(نار)صفت- وږے- نهر- مؤنث ناره-

ناراحت:(نا-را-حت)صفت- بې ارامه- راحت نۀ لرونکے- ارام نۀ لرونکے- مونث ناراحته-

ناراست:(نا-راست)صفت- لټ- سست- ناتړے- ناراسته-

ناراسته:(نا-راس-ته)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناراست-

ناراستي:(نا-راس-تي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لټوالے- سستي- ناراستيا- (۲)ستوماني-

ناراستيا:(نا-راس-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناراستي-

ناراض:(نا-راض)صفت- خفه- نارضا- مرور- پړ- ناراضه- ناراضي-

ناراضتوب:(نا-راض-توب)اسم- واحد- مذکر- خفګان- مرورتيا- پړتوب- ناراضګي- مرورتوب- ناراضي- نارضامندي-

ناراضتيا:(نا-راض-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناراضتوب-

ناراضګي:(نا-راض-ګي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناراضتوب-

ناراضي:(نا-را-ضي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ ناراضتوب- (۲)صفت- وګورئ ناراض-

نارام:(نا-رام)صفت- بې ارامه- ناراحت- ارام نۀ لرونکے- نارامه-

نارامتيا:(نا-رام-تيا)اسم- واحد- مؤنث- ارام نۀ لرنه- بې ارامي- نارامي- لهلندتيا-

نارامه:(نا-را-مه)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ نارام-

نارامي:(نا-را-مي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نارامتيا-

نارسا:(نا-ره-سا)صفت- د رسا ضد- وګورئ خطا-

نارسائي:(نا-ره-سا-ئي)اسم- واحد- مؤنث- نۀ رسېدنه- دخل نۀ کېدنه-

نارضا:(نا-ره-ضا)صفت- وګورئ ناراض-

نارضامندي:(نا-ره-ضا-من-دي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناراضتوب-

نارګل:(نار-ګل)اسم- واحد- مذکر- د انار ګل-

نارګوړے:(نار-ګو-ړے)اسم تصغير- وړوکے انار- انارکوټے-

نارګيل:(نار-ګيل)اسم- واحد- مذکر- کوپره- ناريال- ناريل- نباتاتي نوم لوډوايشيا سيکېليرم (LODOICEA SECHELARUM)-

نارل:(نا-رل)مصدر لازم- (۱)نعره کول- غر کول- نعره وهل- (۲)اذان کول- بانګ کول- بانګ وئيل-

نارلے:(نا-رۀ-لے)صفت- جمع نارلي- مؤنث نارلې- وګورئ نارل-

نارن:(نا-رن)حاصل مصدر- وګورئ نارل-

نارنج:(نا-رنج)اسم- واحد- مذکر- د سنګترې د خاندان يو بوټے او د هغۀ مېوه- نباتاتي نوم سټرس ميډيکاوار - ايسي ډيکابرانډس (CITRUS MEDICA VAR - ACIDA BRANDIS)- جمع نارنجان-

نارنجي:(نا-رن-جي)صفت- د نارنج پۀ شان رنګ لرونکے- زيړبخن-

نارنګ:(نا-رنګ)حاصل مصدر- وګورئ نارل-

نارنه:(نا-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نارل-

نار نهور:(نار-نه-هور)صفت- بالکل نهر- بېخي وږے- نهر نهور- مؤنث ناره نهوره-

نارو:(نا-رو)اسم- واحد- مذکر- يو قسم خطرناکه بيماري چې عام طور سره

ڼ (ڼې-رل)، ښ (ښې-ره-ول)، ې (پيا-لې)، ئ (تن-دئ) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

دَ ناولیو اَبو لۀ څښلو پیدا کیږی- دې مرض سره پۀ بدن کښې زخم جوړ شی چې پۀ منځ کښې ئې دَ تار غُندې نرے چینجے پیدا کیږی او دا چینجے بهر ته راوځی- کۀ دا چینجے منځ کښې وَسیږی نو بنده مړ شی- نارو- نارون- (م- هندی ناړ)-

ناروا:(نا-ره-وا)صفت- دَ روا ضد- ناجائز- نامناسب- دَ شرعې او مذهب خلاف-

ناروغ:(نا-روغ)صفت- (۱)ناروغه- بیمار- رنځور- ناساز- (۲)وران-

ناروغتیا:(نا-روغ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- بیماری- ناجوړتیا- ناسازی- ناروغی- ناروغوالے-

ناروغوالے:(نا-روغ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناروغتیا-

ناروغول:(نا-رو-غه-وَل)مصدر متعدی- بیمارول- رنځورول- ناجوړه کول-

ناروغون:(نا-رو-غه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ناروغول-

ناروغونکے:(نا-رو-غه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ناروغونکی- مؤنث ناروغونکې- وګورئ ناروغول-

ناروغونګ:(نا-رو-غه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ناروغول-

ناروغونه:(نا-رو-غه-وَۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ناروغول-

ناروغه:(نا-رو-غه)صفت- مذکر مؤنث- وګورئ ناروغ-

ناروغی:(نا-رو-غی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناروغتیا-

نارون:(نا-رُون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نارو-

نارونکے:(نا-رُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نارونکی- مؤنث نارونکې- وګورئ نارل-

ناره:(نا-ره)اسم- واحد- مؤنث- نعره- غږ- ږغ- چغه- اواز- جمع نارې-

ناریال:(نار-یال)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نارګیل-

نارینتوب:(نا-رین-توب)اسم- واحد- مذکر- نرتوب- سړیتوب- (۱)دَ سړی جوړېدو حالت- (۲)مړانه- شجاعت- بهادری-

نارینه:(نا-ری-نه)صفت- نر- (۱)مذکر- سړے- مرد- (۲)بهادر- تکړه- تورزن-

نارې:(نا-رې)اسم- جمع- دَ ناره جمع- چغې- نعرې- غږونه- اوازونه-

نارې سُورې:(نا-رې-سو-رې)اسم- جمع- چغې سُورې- شور زوږ- ژړا فریاد-

ناربل:(نا-ربل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نارګیل-

نارے:(نا-رے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ګاښت خوراک- دَ سحر خوراک- (۲)هغه خوراک چې دَ وادۀ پۀ ورومبنیو دریو ورځو او شپو کښې پۀ ناوې پسې دَ مور پلار لۀ کوره راځی- (۳)اس له روزانه ورکونکے خوراک-

ناړ:(ناړ)اسم- واحد- مذکر- دَ غنم یا وربشې بُوټے چې وړے درېوړې نۀ وی- دروخه- ناړګوړه-

ناړ:(ناړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نړا-

ناړام:(نا-ړام)صفت- ضدی- سرکش- اړیمار- ناړامه-

ناړامتوب:(نا-ړام-توب)اسم- واحد- مذکر- ضد- سرکشی- اړ- ناړامی-

ناړامه:(نا-ړا-مه)صفت- مذکر مؤنث- وګورئ ناړام-

ناړامی:(نا-ړا-می)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناړامتوب-

ناړک:(نا-ړک)صفت- ناړیک- ناجغه- هغه غوے چې دَ ایوې کولو بلد نۀ وی- ناړکه- ناجغ- ناګویه- ناژغ-

ناړکه:(نا-ړۀ-که)صفت- مذکر مؤنث- وګورئ ناړک-

ناړګوړه:(ناړ-ګو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناړ(۱)-

ناړل:(نا-ړل)مصدر لازم- دَ خرۀ هینګېدل- دَ خرۀ برړېدل- نړل-

ناړلے:(نا-ړۀ-لے)صفت/مفعول- وګورئ ناړل-

ناړن:(نا-ړن)حاصل مصدر- وګورئ ناړل-

ناړن:(نا-ړن)صفت- هغه څوک چې مُدام ئې لۀ خُلې لاړې بهیږی- لاړن- لاړېژن- لاړېجن- لاړجن- مؤنث ناړنه-

ناړنګ:(نا-ړنګ)حاصل مصدر- وګورئ ناړل-

ناړنه:(نا-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ناړل-

ناړو:(نا-ړو)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نارو-

ناړونکے:(نا-ړون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع ناړونکی- مؤنث ناړونکې- وګورئ ناړل-

ناړه:(نا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خلې څڅېښناکې اُبۀ- لعاب- لاړه- جمع ناړې-

ناړه:(نا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خرۀ هینګا- دَ خرۀ برړه- اواز- جمع ناړې-

ناړه:(نا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- دَ بوټی جرړه- جمع ناړې-

ناړیک:(نا-ړیک)صفت- وګورئ ناړک- مؤنث ناړیکه-

ناړې:(نا-ړې)اسم- جمع- مؤنث- دَ ناړه جمع- لاړې- توکاڼې- دَ خُلې لعاب-

ناړی:(نا-ړی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ غنمو یا وربشو بې وږی وچ بوټے- دروخه- (۲)دَ بوټ تسمه- (۳)دَ څرمنې سربانړے- بددیزه- (۴)دَ دوو غرونو تر منځه پرته سرسبزه وادی-

ناړے:(نا-ړے)اسم- واحد- مذکر- ړنړر- غُړګه- ړندرکے- جمع ناړی-

ناز:(ناز)اسم- واحد- مذکر- (۱)ادا- نخره- غمزه- (۲)مینه- محبت- (۳)غرور- فخر- (۴)لوئی- عزت-

نازان:(نا-زان)صفت- ناز کونکے- فخر کونکے-

نازبرداری:(ناز-بر-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- ناز وړنه- نخرې زغمنه- غمزې برداشت کونه-

نازبو:(ناز-بو)اسم- واحد- مذکر- یو قسم خوشبودار بوټے-

نازبین:(ناز-بین)صفت- پۀ نازونو لوئ شوے- دَ ناز کولو بلد- نیازبین- نازنین- نازپرور-

نازبین توب:(ناز-بین-توب)اسم- واحد- مذکر- پۀ ناز لوئېدنه- ناز کونه- نیازبین توب-

نازپرور:(ناز-پر-ور)صفت- وګورئ نازبین- مؤنث نازپروره-

زبر "(خ-بۀ-ره)، زورکے "(شل)، زېر "(ک-تاب)، پېش "(نو-کا-ره)، جزم "(شکوڼ)، "ۀ "(ز-ړه)، "ۀ "(ړو-بې-دۀ)

نازغوره:(ناز-غه-وه-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم خطرناکه دانه چې بنده ترې مري- خوراکي ننکۍ-

نازک:(نا-زک)صفت- (۱)باریک- کمزورے- کچه- لطیف- (۲)پوست- نرم- (۳)ګران- مشکل- (۴)تیز- تُند- (۵)خطرناک- مؤنث نازکه-

نازک اندام:(نا-زک-اَن-دام)صفت- نازک اندامونه لرونکے- نرم او کمزورے وجود لرونکے- نازک بدن- مؤنث نازک اندامه-

نازک بدن:(نا-زک-به-دن)صفت- (۱)وګورئ نازک اندام- (۲)معشوق- محبوب-

نازکتوب:(نا-زک-توب)اسم- واحد- مذکر- د نازک کېدو حالت- نازک کېدنه- نزاکت- نازکوالے- نازکي-

نازک مزاج:(نا-زک-م-زاج)صفت- بدخویه- بدمزاج- لهٔ خویه تریخ- بددماغ- مؤنث نازک مزاجه-

نازک مزاجي:(نا-زک-م-زا-جي)اسم- واحد- مؤنث- بدخوئي- بدمزاجي- بددماغي-

نازکوالے:(نا-زک-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نازکتوب-

نازکي:(نا-زهٔ-کي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نازکتوب-

نازل:(نا-زل)صفت- (۱)راکوزېدونکے- ښکته راتلونکے- (۲)راکوز شوے- لهٔ بره ښکته رالېږلے شوے- وارد شوے-

نازلول:(نا-ز-له-وَل)مصدر متعدي- راکوزول- لهٔ بره رالېږل- ښکته راستول- واردول-

نازلون:(نا-ز-له-وَن)حاصل مصدر- وګورئ نازلول-

نازلونکے:(نا-ز-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نازلونکي- مؤنث نازلونکې- وګورئ نازلول-

نازلونګ:(نا-ز-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نازلول-

نازلونه:(نا-ز-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نازلول-

نازلېدل:(نا-ز-لې-دل)مصدر لازم- راکوزېدل- لهٔ بره راتلل- واردېدل-

نازلېدن:(نا-ز-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نازلېدل-

نازلېدنګ:(نا-ز-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نازلېدل-

نازلېدنه:(نا-ز-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نازلېدل-

نازلېدونکے:(نا-ز-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نازلېدونکي- مؤنث نازلېدونکې- وګورئ نازلېدل-

نازلېدهٔ:(نا-ز-لې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ نازلېدل-

نازمن:(ناز-مَن)صفت- نازمند- نیازمن- نیازمند- (۱)حاجتمند- ارزومند- د ليدو اجازت غوښتونکے- د حاضرېدو خواهش لرونکے- (۲)عاجزي او انکسار کونکے- دا لفظ متکلم د خپل ځان د پاره د انکسار پهٔ توګه مخاطب ته استعمالوي-

نازمنتوب:(ناز-مَن-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نازمندي-

نازمند:(ناز-مَند)اسم صفت- وګورئ نازمن-

نازمندي:(ناز-مَن-دي)اسم- واحد- مؤنث- نازمني- نیازمني- نیازمندي- (۱)ارزومندي- د ليدو خواهش لرنه- اجازت غوښتنه- (۲)عاجزي- انکسار-

نازمني:(ناز-مهٔ-ني)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نازمندي-

ناز نخره:(ناز-نَخ-ره)اسم مرکب- ټېنګ مقېنګ- کېږ مکېږ- ناز و ادا- ناز او نخره-

نازنین:(نا-زه-نین)صفت- (۱)ناز کونکے- نیازبین- نازبین- (۲)ښکلے- ښائسته- (۳)محبوب- معشوق- مؤنث نازنینه-

نازول:(نا-زه-وَل)مصدر متعدي- (۱)پهٔ ناز ساتل- پهٔ پېره مينه لوېول- (۲)چا سره د پېرې مينې اظهار کول-

نازولے:(نا-زه-وهٔ-لے)صفت- جمع نازولي- مؤنث نازولې- وګورئ نازول-

نازون:(نا-زه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ نازول-

نازونکے:(نا-زه-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نازونکي- مؤنث نازونکې- وګورئ نازول-

نازونګ:(نا-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نازول-

نازونه:(نا-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نازول-

نازیت:(نا-زي-یت)اسم- واحد- مذکر- د هټلر آمرانه نظریه او نظامت-

نازېبا:(نا-زې-با)صفت- ښهٔ نهٔ ښکارېدونکے- خراب- نامناسب-

نازېدل:(نا-زي-دل)مصدر لازم- (۱)فخر کول- ناز کول- (۲)ناز و ادا کول- نخره کول-

نازېدلے:(نا-زي-دهٔ-لے)صفت مفعول- واحد- مذکر- جمع نازېدلي- مؤنث نازېدلې- وګورئ نازېدل-

نازېدن:(نا-زي-دن)حاصل مصدر- وګورئ نازېدل-

نازېدنګ:(نا-زي-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نازېدل-

نازېدنه:(نا-زي-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نازېدل-

نازېدونکے:(نا-زي-دون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نازېدونکي- مؤنث نازېدونکې- وګورئ نازېدل-

نازېدهٔ:(نا-زي-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ نازېدل-

ناژغ:(نا-ژغ)صفت- وګورئ ناړک-

ناژهٔ:(نا-ژهٔ)صفت- وګورئ ناړهٔ-

ناړهٔ:(نا-ړهٔ)صفت- ناژهٔ- ناویلې- چکه- (غوږي)-

ناس:(ناس)اسم- جمع- د اناس مخفف- بندګان- خلق- انسانان- (عربي)

ناس:(ناس)اسم- واحد/جمع- مذکر- نسوار- ګکاري- (هندي)-

ناس:(ناس)صفت- تباه- برباد- تالا- (هندي)-

ناساز:(نا-ساز)صفت- (۱)ناجوړ- بیمار- رنځور- (۲)ناموافق- مخالف- ناموزون-

ناسازګار:(نا-ساز-ګار)صفت- هغه چې راس نهٔ وي- غیر موافق- مخالف- ناموزون-

ناسازه:(نا-سا-زه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناکړده- زیاتے- ناروا- (۲)صفت- دَ ناساز مؤنث- وګورئ ناساز- (۳)ورانے- مخالفت- ناسازی-

ناسازی:(نا-سا-زي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بیماري- ناجوړتیا- (۲)مخالفت- ورانے-

ناسپاس:(نا-س-پاس)صفت- شُکر نهٔ کونکے- ناشُکره- (م- فارسي)-

ناسپاسی:(نا-س-پا-سي)اسم- واحد- مؤنث- ناشکري- ناښمني- شکر نهٔ کونه-

ناست:(ناست)صفت- دَ ولاړ ضد- (۱)پهٔ کوږو یا دَ جسم پهٔ وروستي حصه دَ ارام دَ پاره ځاي نیو نکے- (۲)پهٔ زمکه یا ونه دَ پنجو پهٔ سر ځاي نیو نکے- (۳)دستبردار- دَ چا مقابله پرېښودونکے- (۴)محتاج- حاجتمند- (۵)دَ زمکې څهٔ ځاي، دېوال وغېره له خپله حده پهٔ زمکه کښې ننوتے- ښخ شوے-

ناست پاست:(ناست-پاست)صفت- تعلق لرونکے- ناستے پاستے کونکے- ناست ولاړ- دَ ناستي پاستي ملګرے- ناستکونے- ناسته پاسته کونکے-

ناستک:(ناس-تک)اسم- واحد- مذکر- دَ ناستي ځايُ- کرسي- تخت- کټکے وغېره- (افغانستان)-

ناستکونے:(ناست-کو-نے)صفت- ناسته پاسته کونکے- دَ ناستي ملګرے- جمع ناستکوني- مؤنث ناستکونې-

ناستل:(ناس-تل)مصدر لازم- کښېناستل- (عامیانه)-

ناستوګنه:(ناس-توګ-نه)اسم- واحد- مؤنث- ناسته پاسته- تعلق- ناستے پاستے- ناستوګه- ناسته ولاړه-

ناستوګه:(ناس-تو-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناستوګنه-

ناستون:(ناس-تون)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ ناستوګنه- (۲)وګورئ ناسته-

ناسته:(ناس-ته)اسم- واحد- مؤنث- ناستے- (۱)دَ کښېناستو حالت- (۲)نشست- جلسه- (۳)تعلق- ناستوګنه- ناسته پاسته- (۴)اودس ماتے- رفع حاجت-

ناسته پاسته:(ناس-ته-پاس-ته)اسم مرکب- مؤنث- (۱)ناستے پاستے- تعلق- ناسته ولاړه- ناستوګنه- (۲)دَ ناستي طریقه، چل-

ناستے:(ناس-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناسته-

ناستے پاستے:(ناس-تے-پاس-تے)اسم مرکب- وګورئ ناسته پاسته-

ناسخ:(نا-سخ)صفت- (۱)لیکونکے- کاتب- (۲)منسوخونکے- ردکونکے- (۳)ورانونکے-

ناسره:(ناس-ره)صفت- کوته- نهٔ چلېدونکے- قلب-

ناسکه:(نا-سه-که)صفت- دَ سکه یا حقیقي ضد- دَ دوېمې مور یا دوېم پلار اولاد- دَ دوېمې ښځې یا دوېم خاوند اولاد- دَ مور دوېم خاوند یا دَ پلار دوېمه ښځه- وغېره وغېره-

ناسم:(نا-سم)صفت- دَ سم ضد- غلط- زران-

ناسوب:(نا-سوب)صفت- ناموجود- غېرحاضر- غېر موجود- غائب-

ناسوت:(نا-سوت)اسم- واحد- مذکر- (۱)عام اجسام یا جسمونه- دنیا- (۲)ښکارند عبادت- شریعت-

ناسوتی:(نا-سو-تي)صفت- دَ ناسوت سره نسبت لرونکے- وګورئ ناسوت-

ناسور:(نا-سور)اسم- واحد- مذکر- نهٔ جوړېدونکے زخم-

ناسولټ:(نا-سو-لټ)صفت- بدشکله- بې ډوله- مؤنث ناسولټه-

ناسونت:(نا-سو-نت)صفت- (۱)هغه ځوک چې دَ سُنت مطابق ترې خټنه نهٔ وي پرېکړے شوی- شوپا- (۲)جاهل- شوپړ-

ناسیال:(نا-سیال)صفت- (۱)هغه ځوک چې دَ چا سره سیال نهٔ وي- دَ چا همسر نهٔ وي- (۲)دَ انار پوستکے- (۳)کچه انار- (۴)یو قسم اتش بازي-

ناسیت:(نا-سیت)اسم- واحد- مذکر- بدبختي- بدنصیبي- شامت-

ناشپاتی:(ناش-پا-تي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- دَ ناک او ټانګو دَ قسم یوه ونه او دَ هغې مېوه- نشپاتی- نباتاتی نوم پائرس کمیونس -(PYRUS COMMUNIS)

ناشته:(ناش-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ سحر خوراک- دَ ورځې وړومبے خوراک-

ناشدنی:(نا-ش-ده-نی)صفت- نهٔ کېدونکے- ناشونے- دَ نهٔ کېدو قابل- (۲)قابل افسوس- لهٔ افسوسه ډک-

ناشده:(نا-ش-ده)صفت- نهٔ کېدونکے- ناممکن- ناشونے- ناشوده-

ناشر:(نا-شر)صفت- کتابونه چاپونکے او خرڅونکے- خورونکے- دَ اشاعت کار کونکے- جمع ناشران- مؤنث ناشره- (م- عربي)-

ناششته:(نا-شش-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناشیشته-

ناشکرت:(نا-شُک-رت)صفت- شُکر نهٔ کونکے- ناسپاس- ناشُکرته- ناشکره-

ناشکرته:(نا-شُک-ره-ته)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناشُکرت-

ناشکره:(نا-شُک-ره)صفت- وګورئ ناشکرت-

ناشکری:(نا-شُک-ري)اسم- واحد- مؤنث- شکر نهٔ ویستنه- شکریه نهٔ ادا کونه- دَ چا دَ ښېګړې مننه نهٔ کونه-

ناشناخت:(نا-شه-ناخت)صفت- هغه چې پېژندګلو يُ نهٔ کېږي- ناشناس- ناآشنا- ناشناخته-

ناشناخته:(نا-شه-ناخ-ته)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناشناخت-

ناشناس:(نا-شه-ناس)صفت- وګورئ ناشناخت-

ناشنائی:(ناش-نا-ئي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نااشناتوب-

ناشوده:(نا-شو-ده)صفت- وګورئ ناشده-

ناشوېت:(نا-شو-ېت)صفت- بې تهذیبه- جاهل- شاړ شپړ- ناشوړت- ناشولت- ناشولټ- ناشوېته- ناشوړته- ناشولټه- ناشولته-

ناشوېته:(نا-شو-ېهٔ-ته)اسم/صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناشولته-

ناشوړت:(نا-شو-ړت)صفت- وګورئ ناشوېت-

ناشوړته:(نا-شو-ړهٔ-ته)صفت/اسم- مذکر/مؤنث- وګورئ ناشولته-

ناشولت:(نا-شو-لت)صفت- وګورئ ناشوېت-

ناشولتوب:(نا-شو-لت-توب)اسم- واحد- مذکر- بې تهذيبي- جهالت- ناشولتتوب-

ناشولته:(نا-شو-لهٔ-ته)صفت- مذكر/مؤنث- (۱)وګورئ ناشوړت- (۲)اسم- فضول خبره- بې کاره خبره- بکواس- ناشوړته- ناشوړته- بې تهذيبه خبره- ناشولتې-

ناشولتې:(نا-شو-لتې)صفت- وګورئ ناشوړت-

ناشولتتوب:(نا-شو-لتې-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناشولتوب-

ناشولتې:(نا-شو-لهٔ-تې)صفت/اسم- مؤنث- وګورئ ناشولته- جمع ناشولتې-

ناشونکے:(نا-شون-کے)صفت- جمع ناشونکي- مؤنث ناشونکې- نهٔ کېدونکے- ناممکن- ناشونے- ناکېدونے-

ناشونے:(نا-شو-نے)صفت- جمع ناشوني- مؤنث ناشونې- وګورئ ناشونکے-

ناشي:(نا-شي)صفت- (۱)پېدا کېدونکے- شروع کېدونکے- (۲)ښکارېدونکے- ښکاره- واضح-

ناشيشته:(نا-شيش-ته)اسم- واحد- مؤنث- دَ غنمو دَ مغز نه جوړ کړے شوی ست- ناششته- نشاسته-

ناشے:(نا-شے)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ترخه دوړه چې پهٔ سپېرمو راکښلے شي-

ناښ:(ناښ)اسم- واحد- مذکر- داړه- جمع ناښونه-

ناښاد:(نا-ښاد)صفت- هغه چې خوشحال نهٔ وی- غمزده- نامراد- غمزپلے- خفه- ناخوښ- ناخورسند- مؤنث ناښاده-

ناښمنی:(نا-ښ-مهٔ-ني)اسم- واحد- مؤنث- ناشکری- احسان نهٔ منته- ناسپاسی-

ناښنده:(نا-ښن-ده)صفت- مذكر/مؤنث- بې ځايه- نامناسب- ناموزون- نامعقول- جمع ناښندی/ناښندې-

ناښنے:(نا-ښهٔ-نے)صفت- ناکاره- ناساز- خراب- وران- جمع ناښني- مؤنث ناښنې-

ناصاف:(نا-صاف)صفت- دَ صفا ضد- (۱)ناپاک- ناصافه- خيرن- ګنده- (۲)هغه چې ګېړون پکښې شوے وی-

ناصافه:(نا-صا-فه)صفت- مذكر/مؤنث- وګورئ ناصاف-

ناصبور:(نا-ص-بور)صفت- صبر نهٔ کونکے- بې صبره- مؤنث ناصبوره-

ناصح:(نا-صح)صفت- نصيحت کونکے- صلاح کار- واعظ-

ناصر:(نا-صر)صفت- مدد کونکے- حامی- معاون- مددګار- مؤنث ناصره-

ناطق:(نا-طق)صفت- (۱)خبرې کونکے- دَ خبرو يا ګويايي قوت لرونکے- (۲)عقل لرونکے- دَ شعور خاوند- (۳)کلک- مضبوط- مستحکم- (۴)غلے کونکے- لاجوابه کونکے-

ناطقه:(نا-ط-قه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خبرو کولو قوت- قوت ګويائي-

ناظر:(نا-ظر)صفت- (۱)نظر کونکے- کتونکے- (۲)نګهبان- محافظ- (۳)دَ دفتر محافظ- منېجر- (۴)ايجړا- ميجړا- خواجه سرا- لښتی- جمع ناظران-

ناظره:(نا-ظ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ليدو قوت- (۲)قران شريف لوستنه-

ناظم:(نا-ظم)صفت- (۱)نظم ليکونکے- (۲)انتظام کونکے- دَ کار مشر- (۳)سېکرټری- (۴)ګورنر- جمع ناظمان-

ناعاقبت انديش:(نا-عا-ق-بت-ان-ديش)صفت- دَ انجام سوچ نهٔ کونکے- دَ نتيجې فکر نهٔ کونکے-

ناعلاج:(نا-ع-لاج)صفت- لاعلاج- ناعلاجه- (۱)هغه چې علاج ئې نهٔ شی کېدے- نهٔ رغېدونکے- (۲)ناشونے- ناممکن-

ناعلاجه:(نا-ع-لا-جه)صفت- مذكر/مؤنث- وګورئ ناعلاج-

ناغ:(ناغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کبر- لوئی- (۲)نخره- مکېز- قېنج- (۳)پُشت- خاندان-

ناغس:(نا-غس)صفت- (۱)خيرن خچن- ناولے- (۲)کوټه- ناقص- قلپ- مؤنث ناغسه-

ناغښتلے:(نا-غښ-تهٔ-لے)صفت- کچه (تار وغېره) چې تاؤ نهٔ وی ورکړے شوے- چې غښتلے شوے نهٔ وی- ناغښتے-

ناغښتے:(نا-غښ-تے)صفت- وګورئ ناغښتلے-

ناغن:(نا-غن)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نغند-

ناغوره:(نا-غوه-ره)صفت- مذكر/مؤنث- ناخوښ- ناپسند- ناخوښه-

ناغورنده:(نا-غو-ړن-ده)اسم- واحد- مؤنث- کاواکه- بې فائدې خبره- ناشولته- اپلته- شګوپه- جمع ناغوړندې-

ناغه:(نا-غه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه جُرمانه چې دَ قصور يا مُلامتيا کولو پهٔ وجه لهٔ چا وَصولولے شي- دَ باندې ماتولو پهٔ جرم کښې وصولونکې جُرمانه- (۲)هغه تخم چې زرغن نهٔ شی او پهٔ زمکه کښې دننه پاتې شی- (۳)دَ سترګو سرهٔ سرهٔ نری رګونه چې دَ غصې يا بېرې ژړا پهٔ وجه ښکارېږی- (۴)چُوټې- تعطيل- (۵- صفت)نامناسب- غلط- ناموزون-

ناغه دار:(نا-غه-دار)صفت- (۱)ناغه وصولونکے- جرمانه اخستونکے- (۲)ناغه لرونکے- (فصل)- (۳)دَ سترګو صفت- تاکی لرونکے- مؤنث ناغه داره-

ناغېړن:(نا-غې-ړن)صفت- (۱)ناراسته- سست- لټ- (۲)ناقابل برداشت-

ناغېړی:(نا-غې-ړی)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ کاره سترګې پټونه- ناراستی- لټوالے-

ناف:(ناف)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خېټې غټې- نوم- (۲)منځ- مرکز-

نافذ:(نا-فذ)صفت- جاری کېدونکے- صادرېدونکے (حکم)-

نافذه:(نا-ف-ذه)صفت- جاری شوے- صادر شوے-

نافرمان:(نا-فر-مان)صفت- نامنونکے- لهٔ حُکم يا خبرې نه انکار کونکے- باغی- سرکش-

نافرمانه:(نا-فر-ما-نه)صفت- مذكر/مؤنث- وګورئ نافرمان-

نافرمانی:(نا-فر-ما-نی)اسم- واحد- مؤنث- حکم نهٔ منته- بغاوت- سرکشی-

نافع:(نا-فع)صفت- نفع ورکونکے- ګټه ور- فائده من-

نافله:(نا-ف-له)اسم- واحد- مؤنث- هغه عبادت چې واجب نهٔ وی بلکې

د ثواب د پاره وکړې شي- نفل- (عربي)-

نافه:(نا-فه)اسم- واحد- مؤنث- د مشکو تېلئ- هغه خوشبويه وينه چې د يو قسم هوسي د نامه سره جُختې تېلئ کښې جمع شوې وي-

نافهم:(نا-فه-م)صفت- (۱)ناپوهه- کم عقل- ساده- نادان- (۲)بې علمه- جاهل- جټ- مؤنث نافهمه-

نافهمي:(نا-فه-مي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناپوهي- کم عقلتوب- (۲)بې علمي- جهالت- (۳)وګورئ ناپامي-

نافي:(نا-في)صفت- نفي کونکے- بېلونکے- نړي کونکے-

ناقابل:(نا-قا-بل)صفت- د قابل ضد- (۱)نالائق- جاهل- (۲)ناموزون- نامناسب- سمون نهٔ خوړونکے-

ناقابلتوب:(نا-قا-بل-توب)اسم- واحد- مذکر- ناقابلتيا- ناقابليت- (۱)نالائقتوب- جهالت- (۲)ناموزونتوب- نامناسبتوب- سمون نهٔ خوړنه-

ناقابلتيا:(نا-قا-بل-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناقابلتوب-

ناقابليت:(نا-قا-ب-لي-يت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناقابلتوب-

ناقد:(نا-قد)صفت- کتونکے- ښهٔ خراب معلومونکے- جمع ناقدان-

ناقرار:(نا-قه-رار)صفت- قرار نهٔ لرونکے- ارام نهٔ کونکے- بې قرار- ناقلاره- ناقراره- ناقلار-

ناقراره:(نا-قه-را-ره)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناقرار-

ناقراري:(نا-قه-را-ري)اسم- واحد- مؤنث- قرار نهٔ لرنه- بې ارامي- ناقلاري-

ناقص:(نا-قص)صفت- (۱)نيمګړے- نامکمل- (۲)نقص لرونکے- عېب لرونکے- عېب دار- (۳)ناخالص- جُوټه-

ناقصد:(نا-قصد)متعلق فعل- بې قصده- بې ارادې- بې منشا- بې نيته- ناقصده-

ناقصده:(نا-قص-ده)متعلق فعل- وګورئ ناقصد-

ناقل:(نا-قل)صفت- صفت- نقل کونکے- لهٔ يو ځايه بل ځاې ته وړونکے- روايت بيانونکے- راوي-

ناقلار:(نا-قه-لار)صفت- وګورئ ناقرار-

ناقلاره:(نا-قه-لا-ره)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناقرار-

ناقلاري:(نا-قه-لا-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناقراري-

ناقوس:(نا-قوس)اسم- واحد- مذکر- هغه ګوګو يا بيګل چې هندوان يې د خپل عبادت پهٔ وخت غږوي-

ناقه:(نا-قه)اسم- واحد- مؤنث- د اوښ مؤنث- اوښه-

ناقه:(نا-قه)اسم- زا... - مؤنث- وګورئ ناکه-

ناک:(ناک)اسم- واحد- مذکر- د ناشپاتئ د قسم يوه ونه او د هغې مېوه- ناکه- ټانګو- د نباتاتي نوم د پاره وګورئ ناشپاتئ-

ناک:(ناک)لاحقه- هغه لاحقه چې د اسم سره پهٔ لګېدو صفتي معنې پېدا کوي لکه درد نه دردناک، غم نه غمناک او خوف نه خوفناک وغيره-

ناکارتوب:(نا-کار-توب)اسم- واحد- مذکر- بدکاري- بداخلاقي- ناکاره توب-

ناکاره:(نا-کا-ره)صفت- (۱)کار نهٔ کونکے- زوړ- خراب- (۲)بدکار- بداخلاق-

ناکاره توب:(نا-کا-ره-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناکارتوب-

ناکافي:(نا-کا-في)صفت- لهٔ ضرورته کم- لږ- غير کافي-

ناکام:(نا-کام)صفت- (۱)ناکامياب- مقصد نهٔ حاصلونکے- (۲- اسم- واحد- مذکر)مجبوري- بې وسي- (۳)ناممکنه کېدونکے کار- ناګزير کار- (۴)خواري- محنت-

ناکامتوب:(نا-کام-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناکامي- مقصد نهٔ حاصلېدنه- ناکاميابي- (۲)بې وسي- مجبوري-

ناکامول:(نا-کا-مه-ول)مصدر متعدي- ناکاميابول- مقصد تر لاسه کولو کښې پاتې راوستل- بې وسه کول- مجبورول-

ناکامون:(نا-کا-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ناکامول-

ناکامونکے:(نا-کا-مه-وون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع ناکامونکي- مؤنث ناکامونکې- وګورئ ناکامول-

ناکامونګ:(نا-کا-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ناکامول-

ناکامونه:(نا-کا-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ناکامول-

ناکامي:(نا-کا-مي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ ناکامتوب- (۲)صفت- ناکام کونکے- خواري او سخته برداشت کونکے-

ناکامېدل:(نا-کا-مې-دل)مصدر لازم- ناکاميابېدل- مقصد تر لاسه کولو کښې پاتې راتلل- بې وسه کېدل-

ناکامېدن:(نا-کا-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ناکامېدل-

ناکامېدنګ:(نا-کا-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ناکامېدل-

ناکامېدنه:(نا-کا-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ناکامېدل-

ناکامېدهٔ:(نا-کا-مې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ناکامېدل-

ناکجات:(نا-کُ-جات)صفت- لُوچه- لوفر- کمينه- لُوچک- لُوچ- لچر-

ناکجاتوالے:(نا-کُ-جات-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- ناکجاتوب- ناکجاتي- لُوچه توب- لچرتوب- لوفرتوب- قچرتوب-

ناکجاتوب:(نا-کُ-جا-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناکجاتوالے-

ناکجاتي:(نا-کُ-جا-تي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناکجاتوالے-

ناکرده:(نا-کر-ده)اسم- واحد- مؤنث- د "ناکردې" واحد- وګورئ ناکړدې-

ناکردې:(نا-کر-دې)اسم- جمع- وګورئ ناکړدې-

ناکړده:(نا-کړ-ده)اسم- واحد- مؤنث- جمع ناکړدې- وګورئ ناکړدې-

ناکړدې:(نا-کړ-دې)اسم- جمع- مؤنث- زياتے- ناسازې- ظُلم- شنډې- تکليفونه-

ناکړونے:(نا-کړو-نے)صفت- وګورئ ناشونکے-

ناکس:(نا-کس)صفت- (۱)کمينه- رذيل- لوچه- (۲)نادار- بې کس- عاجز-

ناکلال:(نا-که-لال)صفت- بې تهذیبه- ناموزون- نامناسب-

ناکورا:(نا-کو-را)اسم- واحد- مذکر- د جامو وینځلو کوتک- ټپنې- ځوباړې- ډبې-

ناکوړه:(نا-کو-ړه)صفت- بدشکله- بدرنګ- بې ډوله- ناګوړه-

ناکوکه:(نا-کو-که)صفت- (۱)مریض- بیمار- (۲)بې تال او بې سُره (ساز)-

ناکه:(نا-که)اسم- واحد- مؤنث- یو خطرناک آبي ځناور- مګرمچ-

ناکه:(نا-که)اسم- واحد- مؤنث- د وَلې یا نهر د اُبو جُدا کېدو ځائې- د نهر یا وَلې نه د جُدا کېدونکې لښتې خُله- ناقه-

ناکه:(نا-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د واورې چینجې- (۲)یو قسم سمساره- جمع ناکې-

ناکارتوب:(نا-کار-توب)اسم- واحد- مذکر- ځان ناجاړه کونه- تجاهل- انکار- ناکارتیا-

ناکارتیا:(نا-کار-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناکارتوب-

ناکاره:(نا-کا-ره)صفت- ځان ناجاړه کونکې- منکر- متجاهل- نانکاره-

ناګاه:(نا-ګاه)متعلق فعل- ناڅاپه- ناګهانه- پهٔ بې خبرۍ کښې-

ناګاڼی:(نا-ګا-نی)اسم- واحد- مؤنث- وچ کالې- خشک سالې- سوکړه-

ناګړې:(نا-ګهٔ-ړې)صفت- ضدي- اړک- اړیمار- ناړام- مؤنث ناګړې- جمع ناګړې-

ناګمانه:(نا-ګ-ما-نه)متعلق فعل- (۱)ناګاه- پهٔ بې خبرۍ کښې- ناڅاپه- (۲)صفت- ناجاړه- بې خبره- ناګومانه-

ناګڼلې:(نا-ګه-ڼهٔ-لې)صفت- بې قدره- سپک- بې قیمته- ناخوښه- مؤنث ناګڼلې- جمع ناګڼلې-

ناګوار:(نا-ګه-وار)صفت- (۱)ناخوښ- لهٔ طبعې چپ- د طبیعت خلاف- (۲)مکروه- (۳)نهٔ هضمېدونکې خوراک- بې خونده خوراک-

ناګوړه:(نا-ګو-ړه)صفت- وګورئ ناکوړه-

ناګویه:(نا-ګو-یه)صفت- وګورئ ناړک-

ناګه:(نا-که)اسم- واحد- مؤنث- وچه کیا- د یخنۍ پهٔ موسم کښې د څاروو وچه خوراکه-

ناګهانه:(نا-ګه-ما-نه)متعلق فعل- ناڅاپه- ناګاه- پهٔ بې خیالۍ سره-

ناګهانی:(نا-ګه-ما-نی)صفت- د ناګهانه سره منسوب- وګورئ ناګهانه-

نال(۱):(نال)اسم- واحد- مذکر- (۱)کرنه- بوټې ښخونه- (۲)صفت- کرلې شوې- ښخ کړې شوې (بوټې)- نهال-

نال(۲):(نال)صفت- زخمي- ژوبل- خوږ خوږ-

نال(۳):(نال)اسم- واحد- مذکر- د جوارۍ هغه پیسې چې د پړ مالک ئې له جوارګرو وصولوي-

نال(۴):(نال)اسم- واحد- مذکر- د اسونو پهٔ نُوکو او پهٔ څپلیو وغېره لګېدونکې د اسپنې حلقه یا کړې- نعل- جمع نالونه-

نالان:(نا-لان)صفت- ژړېدونکې- فریادي- عاجز- تنګ شوې- ګیله مند- خپېشلې-

نالائق:(نا-لا-ئق)صفت- د لائق ضد- (۱)نهٔ پوهېدونکې- ناقابل- جاهل- (۲)کمینه- رذیل-

نالائقتوب:(نا-لا-ئق-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناپوهي- ناقابلیت- جهالت- (۲)کمینه توب- رذالت-

نالبکې:(نال-به-کې)اسم- واحد- مذکر- د خوراک رغې لوښې- کاب- غاب- رکېبي- رغې- نعلبکې-

نال بند:(نال-بند)صفت- د څاروو پهٔ نُوکو یا پېزار باندې نال(۴) لګونکې- نعل بند-

نال بندي:(نال-بن-دي)اسم- واحد- مؤنث- د څاروو پهٔ نُوکو یا پېزار باندې نالونه لګونه- نعل بندي-

نالت:(نا-لت)اسم- واحد- مذکر- سرکوزې- خنزیر- سُور- یو مردار ځناور- بدځناور-

نالت:(نا-لت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لعنت-

نالستې:(نا-لس-تې)صفت- (۱)هغه چې لُستلې شوې نهٔ وي (لیک، کتاب وغېره)- (۲)جټ- بې تعلیمه- امي- پهٔ لیک لُست نهٔ پوهېدونکې- نالوستې- جمع نالستې- مؤنث نالستې-

نالش:(نا-لش)اسم- واحد- مذکر- فریاد- د حق او انصاف غُښتنه- د زور زیاتې شکایت-

نال کړې:(نال-کهٔ-ړې)صفت- نالونکې- نال کونکې- بُوټې کرونکې-

نالکې:(نال-کې)اسم تصغیر- نیالګې- نوې کرلې شوې وړوکې بوټې- نال کړې شوې وړوکې بوټې- جمع نالګې-

نالول:(نا-له-ول)مصدر متعدي- (۱)کرل- بُوټې ښخول- (۲)د اس یا بل ځناور پهٔ نُوکو نالونه ټکومل- نعلول- (۳)زخمي کول- ژوبلول-

نالون:(نا-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ نالول-

نالونکې:(نا-له-وون-کې)فاعل- واحد- مذکر- جمع نالونکې- مؤنث نالونکې- وګورئ نالول-

نالونګ:(نا-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نالول-

نالونه:(نا-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نالول-

ناله:(نا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ژړا- فریاد- واوېلا- (۲)شور زوږ- چغې سُورې-

ناله:(نا-له)اسم- واحد- مؤنث- د غرهٔ نه د رابهېدونکیو اُبو لار- غرئیز لښتې-

نالیدلې:(نا-لی-دهٔ-لې)صفت- هغه چې پهٔ نظر نهٔ وي راغلې، چې لیدلې شوې نهٔ وي نادیده- جمع نالیدلي- مؤنث نالیدلې-

نالیز:(نا-لیز)صفت- مؤنث نالیزه- وګورئ نالین-

نالین:(نا-لین)صفت- هغه پېزار چې نالونه پرې لګولي شوي وي- نالیز- مؤنث نالینه-

نالي:(نا-لي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ بارانۀ یا کنده أبو دَ وبستو دَ پاره جوړه کړے شوې لار- وېنې- (۲)دَ لښتي پۀ شکل کنستے شوې کنده-
نالي:(نا-لي)اسم- واحد- مؤنث- نیالی- برستن-
نالے:(نا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بډه کال-
نام:(نام)اسم- واحد- مذکر- نوم- نامه- (۱)دَ څۀ څیز، بنیادم، ځناور، ځاې وغېره دَ پېژندګلو دَ پاره استعمالېدونکے لفظ یا الفاظ- اسم- (۲)شهرت- عزت- (۳)ذات-
نامبارک:(نا-م-با-رک)صفت- دَ مبارک ضد- سپېره- منحوس-
نام بدے:(نام-به-دے)صفت- پۀ بدږالی او خرابوالی مشهور- بدنام-
نامت:(نا-مت)صفت- نېست و نابود- بېخ وتلے- تباه او برباد- فنا-
نامت:(نا-مت)اسم- واحد- مذکر- اراده- عزم- نیت- قصد-
نامتناسب:(نا-م-ته-نا-سب)صفت- تناسب نۀ لرونکے- نسبت نۀ لرونکے-
نامتو:(نام-تو)صفت- (۱)پۀ ښۀ والی مشهور- نامدار- نامور- نوموړے- (۲)تورزن- تکړه-
نامحدود:(نا-مح-دود)صفت- بې اندازې- بې حده- حد نۀ لرونکے- لا محدود-
نامحرم:(نا-مح-رم)صفت- پردے (سړے)- هغه (سړے) چې زنانه له ترې پرده کول واجب وی-
نامحصور:(نا-مح-صور)صفت- دَ محصور ضد- ازاد- چې ګېر کړے شوے نۀ وی-
نام خُدا:(نا-م-خ-دا)کلمه- دَ دُعا کلمه- خداې دې ئې لۀ بدو سترګو وساتی-
نامدار:(نام-دار)صفت- نوموړے- نامور- نامتو- پۀ ښۀ والی مشهور- نامی- مؤنث نامداره-
نامراد:(نا-مراد)صفت- مراد نۀ حاصلونکے- ناکام- بې مراد- بدنصیب- مؤنث نامراده-
نامرادی:(نا-مرا-دی)اسم- واحد- مؤنث- مراد نۀ حاصلونه- ناکامی- بد نصیبی-
نامربوط:(نا-مر-بوط)صفت- ربط نۀ لرونکے- بې ربطه- ګډوډ- ناتړلے-
نامرتب:(نا-م-رت-تب)صفت- بې ترتیبه- ګډوډ- ناسم-
نامرد:(نا-مرد)صفت- نامړد- (۱)مردانه قوت نۀ لرونکے- ایجړا- هیجړا- (۲)بې غېرته- بې حیا-
نامردی:(نا-مر-دی)اسم- واحد- مؤنث- نامړدی- (۱)مردانه قوت نۀ لرنه- ایجړاتوب- (۲)بې غېرتی- بې حیائی-
نامړد:(نا-مړد)صفت- وګورئ نامرد-
نامړدی:(نا-مړ-دی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نامردی-
نامزد:(نام-زد)صفت- (۱)منسوب- موسوم- تړلے- (۲)ټاکلے- مقرر-
نامزدګی:(نام-زد-ګی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)منسوبونه- تړنه- موسومونه- (۲)ټاکنه- مقررونه-

نامشروع:(نا-مش-روع)صفت- دَ شرعي خلاف- ناجائز- ناروا-
نامطبوع:(نا-مط-بوع)صفت- دَ طبعي سره اختلاف لرونکے- ناخوښ- ناګوار-
نامطلوب:(نا-مط-لوب)صفت- هغه چې مطلوب نۀ وی- چې طلب ئې نۀ کېږی- چې ضرورت ئې نۀ وی- مؤنث نامطلوبه-
نامعقول:(نا-مع-قول)صفت- دَ عقل سره اختلاف لرونکے- دَ عقل سره سمون نۀ خوړونکے- مؤنث نامعقوله-
نامعلوم:(نا-مع-لوم)صفت- دَ معلوم ضد- هغه چې درک ئې نۀ لګی.. ورک- مؤنث نامعلومه-
نامکمل:(نا-م-که-مل)صفت- هغه چې سر ته نۀ وی رسېدلے- نیمګړے- ناپوره- مؤنث نامکمله-
نام کټے:(نام-که-ټے)صفت- هغه چې نامه ئې له فهرسته لرې کړے شوې وی- خارج کړے شوے- نامه کټے- وېستلے شوے-
ناملموس:(نا-مل-موس)صفت- دَ ملموس ضد- هغه چې لاس نۀ شی وروړے کېدے- دَ قوت لامسه نه بالاتر-
نامناسب:(نا-م-نا-سب)صفت- دَ مناسب ضد- ناموزون- بې ځایه- مناسبت نۀ لرونکے- سمون نۀ خوړونکے-
نا منع:(نا-مۀ-نع)اسم مرکب- بندېز- پابندی- قدغن- نا منعې-
نا منعې:(نا-مۀ-نې)اسم مرکب- وګورئ نا منع-
نام نویس:(نام-نه-ویس)صفت- نامه لیکونکے- نامه پۀ فهرست کښې شاملونکے یا راوستونکے-
نام نویسی:(نام-نه-وی-سی)اسم- واحد- مؤنث- نامه لیکنه- نامه پۀ فهرست کښې راوستنه- شاملېدنه-
نامور:(نا-مه-ور)صفت- وګورئ نامدار-
ناموزون:(نا-مو-زون)صفت- نامناسب- سمون نۀ خوړونکے-
ناموس:(نا-موس)اسم- واحد- مذکر- عزت- ابرو- ننګ- غېرت- شرم- پت-
ناموندلے:(نا-مون-دۀ-لے)صفت- هغه چې موندلے شوے نۀ وی- بې درکه- ورک- ناموندنے- جمع ناموندلی- مؤنث ناموندلې-
ناموندنے:(نا-مون-دۀ-نے)صفت- جمع ناموندنی- مؤنث ناموندنې- وګورئ ناموندلے-
نام و ننګ:(نام-و-ننګ)اسم مرکب- ننګ ناموس- غېرت- شرم او حیا- عزت-
نامه:(نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نام-
نامه:(نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چیټۍ- خط- (۲)کتاب- رجسټر-
نامه کټے:(نا-مه-که-ټے)صفت- وګورئ نام کټے-
نامه نګار:(نا-مه-ن-ګار)صفت- (۱)خط نویس- (۲)دَ اخبار نمائنده-
نامی:(نا-می)صفت- (۱)غټېدونکے- لوئېدونکے- (۲)وګورئ نامدار-
نامیر:(نا-میر)صفت- نامیرلے- هغه چې منتخب کړے شوے نۀ وی- ناخوښ- مؤنث نامیره-
نامیرلے:(نا-می-رۀ-لے)صفت- وګورئ نامیر-

"زبر"(ح-بۀ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوږ)، "ۀ"(ز-ړه)، "ۀ"(ږو-بې-دۀ)

ناکلال:(نا-که-لال)صفت- بې تهذیبه- ناموزون- نامناسب-

ناکورا:(نا-کو-را)اسم- واحد- مذکر- د جامو وینځلو کوتک- ټپنے- ډوباړے- ډبے-

ناکوړه:(نا-کو-ړه)صفت- بدشکله- بدرنګ- بې ډوله- ناګوړه-

ناکوکه:(نا-کو-که)صفت- (۱)مریض- بیمار- (۲)بې تال او بې سُره (ساز)-

ناکه:(نا-که)اسم- واحد- مؤنث- یو خطرناک اَبي ځناور- مګرمچ-

ناکه:(نا-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ وَلې یا نهر دَ اَبو جُدا کېدو ځاۍ- دَ نهر یا وَلې نه د جُدا کېدونکی لښتی خُله- ناقه-

ناکه:(نا-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د واورې چینجے- (۲)یو قسم سمساره- جمع ناکې-

ناکارتوب:(نا-کار-توب)اسم- واحد- مذکر- ځان ناجایه کونه- تجاهل- انکار- ناکارتیا-

ناکارتیا:(نا-کار-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناکارتوب-

ناکاره:(نا-کا-ره)صفت- ځان ناجایه کونکے- منکر- متجاهل- نانکاره-

ناګاه:(نا-ګاه)متعلق فعل- ناڅاپه- ناګهانه- پهٔ بې خبرئ کښې-

ناکاڼی:(نا-کا-ني)اسم- واحد- مؤنث- وچ کالې- خشک سالي- سوکړه-

ناکړے:(نا-کهٔ-ړے)صفت- ضدی- اړک- اړیمار- ناړام- مؤنث ناکړې- جمع ناکړی-

ناګمانه:(نا-ګُ-ما-نه)متعلق فعل- (۱)ناګاه- پهٔ بې خبرئ کښې- ناڅاپه- (۲)صفت- ناجاپه- بې خبره- ناګومانه-

ناکڼلے:(نا-که-نهٔ-لے)صفت- بې قدره- سپک- بې قیمته- ناخوښه- مؤنث ناکڼلې- جمع ناکڼلی-

ناګوار:(نا-ګه-وار)صفت- (۱)ناخوښ- لهٔ طبعې چپ- دَ طبیعت خلاف- (۲)مکروه- (۳)نهٔ هضمېدونکے خوراک- بې خونده خوراک-

ناګوړه:(نا-ګو-ړه)صفت- وګورئ ناکوړه-

ناګویه:(نا-ګو-یه)صفت- وګورئ ناړک-

ناګه:(نا-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وچه کیا- دَ یخنئ پهٔ موسم کښې دَ څاروو وچه خوراکه-

ناګهانه:(نا-ګه-ها-نه)متعلق فعل- ناڅاپه- ناګاه- پهٔ بې خیالئ سره-

ناګهانی:(نا-ګه-ها-نی)صفت- دَ ناګهانه سره منسوب- وګورئ ناګهانه-

نال(۱):(نال)اسم- واحد- مذکر- (۱)کرنه- بوټے ښخونه- (۲)صفت- کرلے شوے- ښخ کړے شوے (بوټے)- نهال-

نال(۲):(نال)صفت- زخمي- ژوبل- خوږ خوږ-

نال(۳):(نال)اسم- واحد- مذکر- دَ جوارئ هغه پیسې چې دَ پړ مالک يَ له جوارګرو وصولوی-

نال(۴):(نال)اسم- واحد- مذکر- دَ اسونو پهٔ نُوکو او پهٔ څپلیو وغېره لګېدونکې دَ اسپنې حلقه یا کړی- نعل- جمع نالُونه-

نالان:(نا-لان)صفت- ژړېدونکے- فریادی- عاجز- تنګ شوے- ګیله مند- خپېشلے-

نالائق:(نا-لا-ئق)صفت- دَ لائق ضد- (۱)نهٔ پوهېدونکے- ناقابل- جاهل- (۲)کمینه- رذیل-

نالائقتوب:(نا-لا-ئق-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ناپوهي- ناقابلیت- جهالت- (۲)کمینه توب- رذالت-

نالبکے:(نال-به-کے)اسم- واحد- مذکر- دَ خوراک رغے لوښے- کاب- غاب- رکېبي- رغے- نعلبکے-

نال بند:(نال-بند)صفت- دَ څاروو پهٔ نُوکو یا پېزار باندې نال(۴) لګونکے- نعل بند-

نال بندی:(نال-بن-دي)اسم- واحد- مؤنث- دَ څاروو پهٔ نُوکو یا پېزار باندې نالونه لګونه- نعل بندي-

نالت:(نا-لت)اسم- واحد- مذکر- سرکوزے- خنزیر- سُور- یو مردار ځناور- بدځناور-

نالت:(نا-لت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لعنت-

نالستے:(نا-لس-تے)صفت- (۱)هغه چې لُستلے شوے نهٔ وی (لیک، کتاب وغېره)- (۲)جټ- بې تعلیمه- امي- پهٔ لیک لُست نهٔ پوهېدونکے- نالوستے- جمع نالستی- مؤنث نالستې-

نالش:(نا-لش)اسم- واحد- مذکر- فریاد- دَ حق او انصاف غُښتنه- دَ زور زیاتي شکایت-

نال کړے:(نال-کهٔ-ړے)صفت- نالونکے- نال کونکے- بوټے کرونکے-

نالکے:(نال-کے)اسم تصغیر- نیالګے- نوے کرلے شوے وړوکے بوټے- نال کړے شوے وړوکے بوټے- جمع نالګی-

نالول:(نا-له-وُل)مصدر متعدی- (۱)کرل- بوټے ښخول- (۲)دَ اس یا بل ځناور پهٔ نُوکو نالونه ټکول- نعلول- (۳)زخمي کول- ژوبلول-

نالون:(نا-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ نالول-

نالونکے:(نا-له-وون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نالونکی- مؤنث نالونکې- وګورئ نالول-

نالونګ:(نا-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نالول-

نالونه:(نا-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نالول-

ناله:(نا-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ژړا- فریاد- واوېلا- (۲)شور زوږ- چغې سورې-

ناله:(نا-له)اسم- واحد- مؤنث- دَ غرهٔ نه دَ رابهېدونکیو اَبو لار- غرنیز لښتے-

نالیدلے:(نا-لی-دهٔ-لے)صفت- هغه چې پهٔ نظر نهٔ وی راغلے، چې لیدلے شوے نهٔ وی نادیده- جمع نالیدلی- مؤنث نالیدلې-

نالیز:(نا-لیز)صفت- مؤنث نالیزه- وګورئ نالین-

نالین:(نا-لین)صفت- هغه پېزار چې نالونه پرې لګولی شوی وی- نالیز- مؤنث نالینه-

نالی:(نا-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ بارانهٔ یا کنده اَبو دَ وېستو دَ پاره جوړه کړې شوې لار- وېلی- (۲)دَ لښتی پهٔ شکل کنستے شوې کنده-

نالی:(نا-لی)اسم- واحد- مؤنث- نیالی- برستن-

نالے:(نا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بده ګال-

نام:(نام)اسم- واحد- مذکر- نوم- نامه- (۱)دَ څهٔ څیز، بنیادم، څناور، ځایٔ وغیره دَ پېژندګلو دَ پاره استعمالېدونکے لفظ یا الفاظ- اسم- (۲)شهرت- عزت- (۳)ذات-

نامبارک:(نا-مُ-با-رک)صفت- دَ مبارک ضد- سپېره- منحوس-

نام بدے:(نام-به-دے)صفت- پهٔ بدوالی او خرابوالی مشهور- بدنام-

نامت:(نا-مَت)صفت- نېست و نابود- بېخ وتلے- تباه او برباد- فنا-

نامت:(نا-مَت)اسم- واحد- مذکر- اراده- عزم- نیت- قصد-

نامتناسب:(نا-مُ-ته-نا-سب)صفت- تناسب نهٔ لرونکے- نسبت نهٔ لرونکے-

نامتو:(نام-تُو)صفت- (۱)پهٔ ښهٔ والی مشهور- نامدار- نامور- نوموړے- (۲)توروزن- تکړه-

نامحدود:(نا-مَح-دُود)صفت- بې اندازې- بې حده- حد نهٔ لرونکے- لا محدود-

نامحرم:(نا-مَح-رَم)صفت- پردے (سړے)- هغه (سړے) چې زنانه له ترې پرده کول واجب وی-

نامحصور:(نا-مَح-صُور)صفت- دَ محصور ضد- ازاد- چې ګېر کړے شوے نهٔ وی-

نام خُدا:(نا-م-خُ-دا)کلمه- دَ دُعا کلمه- خدایٔ دې یې لهٔ بدو سترګو وساتی-

نامدار:(نام-دار)صفت- نوموړے- نامتو- نامور- پهٔ ښهٔ والی مشهور- نامی- مؤنث نامداره-

نامراد:(نا-مُراد)صفت- مراد نهٔ حاصلونکے- ناکام- بې مراد- بدنصیب- مؤنث نامراده-

نامرادی:(نا-مُرا-دی)اسم- واحد- مؤنث- مراد نهٔ حاصلونه- ناکامی- بد نصیبی-

نامربوط:(نا-مَر-بُوط)صفت- ربط نهٔ لرونکے- بې ربطه- ګډوډ- ناتړلے-

نامرتب:(نا-مُ-رَت-تب)صفت- بې ترتیبه- ګډوډ- ناسم-

نامرد:(نا-مَرد)صفت- نامړد- (۱)مردانه قوت نهٔ لرونکے- ایجړا- هیجړا- (۲)بې غیرته- بې حیا-

نامردی:(نا-مَر-دی)اسم- واحد- مؤنث- نامړدی- (۱)مردانه قوت نهٔ لرنه- ایجړاتوب- (۲)بې غیرتی- بې حیائی-

نامړد:(نا-مړد)صفت- وګورئ نامرد-

نامړدی:(نا-مړ-دی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نامردی-

نامزد:(نام-زد)صفت- (۱)منسوب- موسوم- تړلے- (۲)ټاکلے- مقرر-

نامزدګی:(نام-زد-ګی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)منسوبونه- تړنه- موسومونه- (۲)ټاکنه- مقررونه-

نامشروع:(نا-مَش-رُوع)صفت- دَ شرعې خلاف- ناجائز- ناروا-

نامطبوع:(نا-مَط-بوع)صفت- دَ طبعې سره اختلاف لرونکے- ناخوښ- ناګوار-

نامطلوب:(نا-مَط-لُوب)صفت- هغه چې مطلوب نهٔ وی- چې طلب یې نهٔ کیږی- چې ضرورت یې نهٔ وی- مؤنث نامطلوبه-

نامعقول:(نا-مَع-قُول)صفت- دَ عقل سره اختلاف لرونکے- دَ عقل سره سمون نهٔ خوړونکے- مؤنث نامعقوله-

نامعلوم:(نا-مَع-لُوم)صفت- دَ معلوم ضد- هغه چې درک یې نهٔ لګی- ورک- مؤنث نامعلومه-

نامکمل:(نا-مُ-که-مَل)صفت- هغه چې سر ته نهٔ وی رسېدلے- نیمګړے- ناپوره- مؤنث نامکمله-

نام کټے:(نام-که-ټے)صفت- هغه چې نامه یې له فهرسته لرې کړے شوې وی- خارج کړے شوے- نامه کټے- وېستلے شوے-

ناملموس:(نا-مَل-موس)صفت- دَ ملموس ضد- هغه چې لاس نهٔ شی وروړے کېدے- دَ قوت لامسه نه بالاتر-

نامناسب:(نا-مُ-نا-سب)صفت- دَ مناسب ضد- ناموزون- بې ځایه- مناسبت نهٔ لرونکے- سمون نهٔ خوړونکے-

نا منع:(نا-مهٔ-نع)اسم مرکب- بندېز- پابندی- قدغن- نا منعې-

نا منعې:(نا-مهٔ-نې)اسم مرکب- وګورئ نا منع-

نام نویس:(نام-نه-ویس)صفت- نامه لیکونکے- نامه پهٔ فهرست کښې شاملونکے یا راوستونکے-

نام نویسی:(نام-نه-وی-سی)اسم- واحد- مؤنث- نامه لیکنه- نامه پهٔ فهرست کښې راوستنه- شاملېدنه-

نامور:(نا-مه-وَر)صفت- وګورئ نامدار-

ناموزون:(نا-مَو-زُون)صفت- نامناسب- سمون نهٔ خوړونکے-

ناموس:(نا-مُوس)اسم- واحد- مذکر- عزت- ابرو- ننګ- غیرت- شرم- پت-

ناموندلے:(نا-مُون-دهٔ-لے)صفت- هغه چې موندلے شوے نهٔ وی- بې درکه- ورک- ناموندنے- جمع ناموندلی- مؤنث ناموندلې-

ناموندنے:(نا-مُون-دهٔ-نے)صفت- جمع ناموندنی- مؤنث ناموندنې- وګورئ ناموندلے-

نام و ننګ:(نام-وُ-ننګ)اسم مرکب- ننګ ناموس- غیرت- شرم او حیا- عزت-

نامه:(نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نام-

نامه:(نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)چیټی- خط- (۲)کتاب- رجسټر-

نامه کټے:(نا-مه-که-ټے)صفت- وګورئ نام کټے-

نامه نګار:(نا-مه-نِ-ګار)صفت- (۱)خط نویس- (۲)دَ اخبار نمائنده-

نامی:(نا-می)صفت- (۱)غټېدونکے- لوئېدونکے- (۲)وګورئ نامدار-

نامیر:(نا-میر)صفت- نامیرلے- هغه چې منتخب کړے شوے نهٔ وی- ناخوښ- مؤنث نامیره-

نامیرلے:(نا-می-رهٔ-لے)صفت- وګورئ نامیر-

نامیری:(نا-می-ری)اسم- واحد- مؤنث- ناخوښی-

نامېند:(نا-مېند)صفت- وګورئ ناأمید- (عامیانه)-

نامېنده:(نا-مېن-ده)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناأمید- (عامیانه)-

نان:(نان)اسم- واحد- مذکر- ډوډۍ- روټۍ- ټیکاله- (فارسی)-

نانا:(نا-نا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پودینه- (۲)ډوډۍ (د ماشومانو په ژبه)-

نانبائی:(نان-با-ئی)صفت- ډوډۍ پخونکے- د روټیو د تنارهٔ کار کونکے- نان پز- نانوائی- نان پس- نان کن- (م- فارسی)-

نانبائیتوب:(نان-با-ئی-توب)اسم- واحد- مذکر- د ډوډۍ پخولو کار- نان پزی- د نانبائی کار-

نان پز:(نان-پز)اسم صفت- وګورئ نانبائی-

نان پزی:(نان-پهٔ-زی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نانبائیتوب-

نان پس:(نان-پس)اسم صفت- وګورئ نانبائی-

نانخکه:(نان-خهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ګوډۍ- نېنخکه- لولی- ناوکی-

نانډری:(نان-ډری)اسم- جمع- مؤنث- (۱)د ښځو د خُلې جنګ- د ښځو تر مېنځه بدې ردې- ایری- سپکې او د پېغور نه ډکې خبرې- پېغرنې-

نانډوله:(نان-ډو-له)اسم- واحد- مؤنث- بې خونده او نامعقوله خبره- جمع نانډولې-

نانغت:(نا-نغت)صفت- نامنونکے- نافرمان- پهٔ خبره عمل نهٔ کونکے- نانغتان- نانغتاند- نانغوتان- نانغوتاند- نانغتا- مؤنث نانغته-

نانغتا:(نا-نغهٔ-تا)صفت- وګورئ نانغت-

نانغتان:(نا-نغهٔ-تان)صفت- وګورئ نانغت-

نانغتاند:(نا-نغهٔ-تاند)صفت- وګورئ نانغت-

نانغوتان:(نا-نغو-تان)صفت- وګورئ نانغت-

نانغوتاند:(نا-نغو-تاند)صفت- وګورئ نانغت-

نان کن:(نان-کن)صفت- وګورئ نانبائی-

نانګ:(نانګ)اسم- واحد- مذکر- یو ځنګلی بوټے-

نانګاره:(نانګ-ګا-ره)صفت- وګورئ ناکاره-

نانګره:(نان-ګهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- پاتې شوے خوراک- پاتې شونے- پس خورده-

نانګه:(نانګ-که)اسم- واحد- مؤنث- یو غرنیز بوټے چې مېوه ئې د الو بالو پهٔ شان وی- انانګه-

نان نفقه:(نان-نه-فه-قه)اسم مرکب- (۱)روزی- رزق- انسانی خوراکه- (۲)د کور خرڅه- د بال بچ خرڅه- د کور ماته ګوډه- (م- فارسی)-

نان و آش:(نان-و-آش)اسم مرکب- خوراکه- خوړه- ډوډۍ-

نانوائی:(نان-وا-ئی)صفت- وګورئ نانبائی-

نانوایي:(نان-وا-یي)اسم- واحد- مؤنث- د نانبائی دوکان- تنور-

نانه:(نا-نه)اسم- واحد- مؤنث- نینهء د جوار یا غنم وریته کړې دانه- جمع نانې-

نانی:(نا-نی)صفت- خودغرض- مطلب پرست- خپل مطلبے-

نانیسا:(نا-نی-سا)صفت- (۱)نفرت کونکے- (۲)ویرېدونکے- بزدل- ډرن-

نانیساتوب:(نا-نی-سا-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)نفرت کونه- (۲)ویره- بزدلی-

نانۍ:(نا-نۍ)اسم- واحد- مؤنث- د غوا، غوائی د خرمنې نه جوړه کړے شوې رسۍ-

ناڅ:(ناڅ)اسم- واحد- مذکر- د غرهٔ پهٔ منځ کښې لښتے، ناله- وټ- تنګے-

ناوا:(نا-وا)اسم- واحد- مذکر- نو- سېب- نم- لوندوالے- زیم-

ناواقف:(نا-وا-قف)صفت- ناآشنا- نابلد- ناپېژندګلو-

ناواقفتوب:(نا-وا-قف-توب)اسم- واحد- مذکر- ناآشنائی- نابلدتیا- ناواقفیت- ناواقفتیا- ناپېژندګلوی-

ناواقفتیا:(نا-وا-قف-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناواقفتوب-

ناواقفیت:(نا-وا-ق-فی-یت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناواقفتوب-

ناوخته:(نا-وخ-ته)اسم- واحد- مذکر- (۱)لهٔ مقرره وخت نه وروستو کېدنه- لهٔ مقرره وخت نه وروستو وخت- (۲)متعلق فعل- لهٔ مقرره وخت نه وروستو- د ټاکلی وخت د تېرېدو نه پس-

ناوخدا:(ناو-خ-دا)اسم- واحد- مذکر- ماڼکے- ماڼکے- ماڼے- ملاح- ناخُدا- (م- فارسی)-

ناور:(نا-ور)اسم- واحد- مذکر- ولاړې اُبهٔ- ډنډ- جوړ-

ناورین:(ناو-رین)اسم- واحد- مذکر- غم- خفګان- ماتم-

ناوړ:(نا-وړ)صفت- نامناسب- ناجائز- ناوړه- سمون نهٔ خوړونکے- ناوړے-

ناوړتوب:(نا-وړ-توب)اسم- واحد- مذکر- مناسبت نهٔ خوړنه- سمون نهٔ خوړنه- جواز نهٔ لرنه- ناوړتیا- ناوړی-

ناوړتیا:(نا-وړ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناوړتوب-

ناوړه:(نا-وهٔ-ړه)صفت- مذکر/مؤنث- وګورئ ناوړ-

ناوړی:(نا-وهٔ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناوړتوب-

ناوړے:(نا-وهٔ-ړے)صفت- وګورئ ناوړ-

ناوزګار:(نا-وز-ګار)صفت- د وزګار ضد- پهٔ څهٔ کار کښې لګیا- اخته- مصروف- مشغول- مؤنث ناوزګاره-

ناوزګارتوب:(نا-وز-ګار-توب)اسم- واحد- مذکر- پهٔ څهٔ کار کښې لګیا کېدنه- مصروفیت- په څهٔ کار کښې د مشغولېدو حالت- ناوزګارتیا-

ناوزګارتیا:(نا-وز-ګار-تیا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناوزګارتوب-

ناوسه:(نا-وهٔ-سه)صفت- مذکر/مؤنث- وس نهٔ لرونکے- بې وسه- مجبور-

ناوسی:(نا-وه-سی)اسم- واحد- مؤنث- وس نهٔ لرنه- بې وسی- مجبوری-

ناوک:(نا-وک)اسم- واحد- مذکر- غشے- تیر- خدنګ- (م- فارسی)-

ناوک انداز:(نا-وک-ان-داز)صفت- غشے ویشتونکے- د غشي ویشتو ماهر- تیرانداز- (م- فارسی)-

ناوکی:(نا-وهٔ-کی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نانخکه-

ناول:(نا-وَل)اسم- واحد- مذکر- پۀ افسانوي طرز ليکلے شوې وږده قيصه- وږد نثرى داستان- (م- انګريزى NOVEL)-

ناولتوب:(نا-وَل-توب)اسم- واحد- مذکر- ناپاکي- خيرن والے- پليتوالے- ګنده والے- ناولتيا-

ناولتيا:(نا-وَل-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناولتوب-

ناولټ:(نا-وۀ-لټ)اسم- واحد- مذکر- وړوکے ناول- لنډ ناول- ناولګوټے- (انګريزى NOVELET)-

ناولد:(نا-وه-لد)صفت- (۱)نابلد- ناآشنا- ناواقف- (۲)اولاد نۀ لرونکے- لاولد- مؤنث ناولده-

ناولسټ:(نا-وۀ-لسټ)صفت- ناول ليکونکے- ناول نګار- (انګريزى NOVELIST)-

ناولګوټے:(نا-ول-ګو-ټے)اسم تصغير- وګورئ ناولټ-

ناول نګار:(نا-ول-ن-ګار)صفت- وګورئ ناولسټ-

ناولے:(نا-وۀ-لے)صفت- (۱)ګنده- خيرن- ناپاک- (۲)بدشکله- بدرنګ- (۳)بدعمله- بدکرداره- جمع ناولي- مؤنث ناولې-

ناوتي:(نا-وو-تي)صفت- هغه (ښځه) چې د خپل مسافر خاوند پۀ طمع ناسته وي او د هغۀ هيڅ خبر نۀ راځي-

ناوه:(نا-وه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د کوټې د چت نه د اوبو غورځيدو د پاره جوړه کړے شوې نالي چې عام طور سره د ټيم يا لرګي نه جوړه کړے شوې وي- پرناله- (۲)د نېر (نهر) يا ژورې کندې د پاسه تېر کړے شوے لښتے- جمع ناوې-

ناوه ګي:(نا-وه-ګي)اسم تصغير- د ناوه اسم تصغير- وړه ناوه-

ناويات:(نا-وياټ)صفت- (۱)ګران- خوږ- عزيز- (۲)پۀ نازونو لوئ شوے نيازبين- (۳)ناياب- کمياب- مؤنث ناوياته-

ناوې:(نا-وې)اسم- واحد- مؤنث- (۱)واديدونکې جينۍ- عروس- (۲)صفت- تازه واده شوې (ښځه)-

ناوې پلاز:(نا-وې-پلاز)اسم مرکب- د ناوې کوټه- محل- د ناوې د پاره جوړ کړے شوے ځاے-

ناوېتوب:(نا-وې-توب)اسم- واحد- مذکر- د ناوې کېدو حالت- د وادۀ وړومبى شپې ورځې-

ناوېسا:(نا-وې-سا)صفت- (۱)بې اعتباره- ناقابل اعتبار- (۲)يقين نۀ کونکے- اعتبار نۀ کونکے-

ناوې غړک:(نا-وې-غړک)اسم مرکب- وګورئ ناوې کړت-

ناوې کړت:(نا-وې-کړت)اسم- واحد- مذکر- هغه هوکے چې د شرط پۀ توګه چاله ورکړے شي- ناوې غړک- ناوې کړک (افغانستان)-

ناوې کړک:(نا-وې-کړک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناوې کړت-

ناهڅے:(نا-هه-څے)صفت- رغبت نۀ کونکے- نۀ مائله کېدونکے- هڅه نۀ کونکے- خواهش نۀ لرونکے- جمع ناهڅي- مؤنث ناهڅه/ناهڅې-

ناهموار:(نا-هم-وار)صفت- وګورئ ناموار-

نامنجار:(نا-مَن-جار)صفت- کم اصل- کمينه- رذيل- مؤنث نامنجاره-

ناموار:(نا-مه-وار)صفت- د هوار ضد- (۱)لوړ ژوړ- کندې کپرې- ناهموار- (۲)تضاد لرونکے- فرق لرونکے- (۳)نالائق- نااهل-

ناموارتوب:(نا-مه-وار-توب)اسم- واحد- مذکر- ناهوارى- د ناموار جوړيدو حالت- ناموارتيا-

ناموارتيا:(نا-مه-وار-تيا)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناموارتوب-

ناموارى:(نا-مه-وا-رى)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناموارتوب-

ناموسا:(نا-مو-سا)صفت- ستړے- ستومان- بې ارامه-

ناموسانى:(نا-مو-سا-نى)اسم- واحد- مؤنث- ستړے والے- ستومانى- بې ارامي-

ناميخ:(نا-ميخ)صفت- تباه- برباد- نيست و نابود-

ناميد:(نا-ميد)اسم- واحد- مذکر- د يو ستورى نامه- زهره- (فارسى)-

نائب:(نا-ئب)صفت- د چا کار د هغۀ پۀ غېر موجودګۍ کښې سر ته رسونکے- مددګار- قائم مقام-

نائب السلطنه:(نا-ء-بس-سل-طه-نه)اسم- واحد- مذکر- د بادشاه نائب- وائسراے- (افغانستان)-

نائب الحکومه:(نا-ء-بل-ح-کو-مه)اسم- واحد- مذکر- د حکومت نائب- ګورنر-

نائټروجن:(نا-ئ-ټرو-جن)اسم- واحد- مذکر- د يو بې رنګه، بې بويه او بې خونده ګيس نامه-

نائک:(نا-ئک)صفت- سردار- نيک- خان- مالک- جمع نائکان-

نائم:(نا-ئم)صفت- ويدۀ کېدونکے- خوب کونکے-

نائى:(نا-ئى)اسم- واحد- مذکر- د خلقو حجامتونه او ويښتۀ جوړونکے- حجام- جمع نيان/نايان-

نائيتوب:(نا-ئى-توب)اسم- واحد- مذکر- د نائى کار- د حجامتونو او ويښتو جوړولو کار-

نائينه:(نا-ئ-نه)اسم- واحد- مؤنث- د نائى مؤنث- د نائى ښځه- اُستکاره- ننينه- جمع نائينې-

نائے:(نا-ئے)اسم- واحد- مذکر- (۱)نے- شپېلۍ- (۲)مرى- غاړه- حلق- (م- فارسى)-

نب:(نب)اسم- واحد- مذکر- د قلم (پن يا هولډر وغيره) څوکه- جمع نبونه- (م- انګريزى)-

نبات:(نه-باټ)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)بوټے- واښۀ- ترکارى- سبزى- (عربى)- (۲)يو قسم خوارۀ- مصرى- قند- (فارسى)-

نباتات:(نه-با-تاټ)اسم- جمع- مذکر- د نبات جمع- بوټي- واښۀ- سبزى-

نباتاتي:(نه-با-تا-تي)متعلق فعل- نباتات سره متعلق-

نباتي:(نه-با-تي)صفت- (۱)د نبات سره منسوب- (۲)يو قسم شين بخن رنګ-

نباض:(نه-باض)صفت- (۱)نبض کتونکے- پۀ نبض پوهېدونکے- حکيم-

نبض شناس- (۲)هوښيار- حقيقت شناس- مردم شناس- جمع نباضان- (عربی)-

نبراس:(نب-راس)اسم- واحد- مذکر- ډيوه- چراغ- (عربی)-

نبرد:(نه-برد)اسم- واحد- مذکر- جنګ- جګړه- (م- فارسی)-

نبردآزما:(نه-برد-آز-ما)صفت- بهادر- توررزن- د جنګ کولو مېړنے-

نبردآزمائی:(نه-برد-آز-ما-ئي)اسم- واحد- مؤنث- جنګېدنه- جنګ کونه- جګړه کونه-

نبض:(نه-بض)اسم- واحد- مذکر- د مروند هغه رګ د کوم له حرکته چې د انسان د صحت او مرض حال معلومولے شي- (م- عربی)-

نبوت:(نه-بو-وت)اسم- واحد- مذکر- د الله تعالے احکام رسونه- پېغمبري- رسالت- د نبي جوړېدو حالت- (م- عربی)-

نبوی:(نه-به-وي)صفت- د نبي سره منسوب- د پېغمبر سره نسبت لرونکے-

نبی:(نه-بي)اسم- واحد- مذکر- د الله تعالے پېغام رسونکے- پېغمبر چې پخپله صاحب شريعت نۀ وي- د خدایٔ پاک استاځے- (م- عربی)-

نبيذ:(نه-بيذ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د کجورو عرق- (۲)د تازۀ مېوۀ رس- (۲)لۀ کجورو او اُربشو نه جوړ کړے شوی شراب- (عربی)-

نبيره:(نه-بي-ره)اسم- واحد- مذکر- د څلورم پُشت اولاد- کودے- (عربی)-

نبيل:(نه-بيل)صفت- هوښيار- پوهٔ- فرزانه- (عربی)-

نپټ:(نه-پټ)صفت- (۱)بېکاره- فضول- بې فائدې- (۲)نامناسب- ناموزون- سمون- نۀ خوړونکے- مؤنث نپټه- (م- انګرېزی UNFIT)-

نپل:(ن-پل)اسم- واحد- مذکر- (۱)تے- مېمے- مېمې- (۲)د ټوپک زخه- زرے- (انګرېزی)-

نت(۱):(نت)اسم- واحد- مذکر- لۀ کفارو پۀ جنګ کښې ترلاسه کړے شوے مال- غنيمت-

نت(۲):(نت)صفت- مهار شوے- پېزوانی-

نت(۳):(نت)اسم- واحد- مذکر- د پوزې يو پسول- نته-

نت:(نت)متعلق فعل- همېشه- مدام- هر وخت- (هندی)-

نتاج:(نه-تاج)اسم- واحد- مذکر- زېږه- بچے راوړنه- (م- عربی)-

نتار:(نه-تار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ناتار- جمع نتارونه-

نتائج:(نه-تا-ئج)اسم- جمع- مذکر- د نتيجه جمع- نتيجې-

نتړيکه:(نت-ړي-که)اسم- واحد- مؤنث- تناکه- پُولی- جمع نتړيکې-

نتکی:(نت-کي)اسم تصغير- وړوکے نت يا نته- د پوزې يو پسول-

نتل:(نه-تل)مصدر متعدی- وهل- ټکول- زبونول- له لاده باده ويستل-

نتلے:(نه-تۀ-لے)اسم مفعول- جمع نتلی- مؤنث نتلې- وګورئ نتل-

نتلے:(نه-تۀ-لے)صفت- (۱)سپېره- بدبخت- منحوس- (۲)خفه- غمژن- غمګين-

نتن:(نه-تن)حاصل مصدر- وګورئ نتل-

نتنګ:(نه-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ نتل-

نتنه:(نه-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نتل-

نتواکے:(نت-وا-کے)صفت- مشر- فرمان روا- واکدار- جمع نتواکي- مؤنث نتواکې- (افغانستان)-

نتونکے:(نه-تون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نتونکی- مؤنث نتونکې- وګورئ نتل-

نته:(نه-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د پوزې يو پسول- نت- (۲)د اوښ پۀ سپېږمو کښې اچولے شوے هغه وړوکے لرګے چې مهار ورپورې تړلے شي- جمع نتې-

نتيالی:(نت-يا-لي)صفت- پۀ پوزه نته يا نتکی لرونکې- د نتې مېرمن-

نتيجه:(نه-تي-جه)اسم- واحد- مؤنث- حاصل- ماحاصل- انجام- خاتمه- مېوه- ثمره- مطلب- غرض- جمع نتائج/نتيجې- (م- عربی)-

نټ:(نټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)شعبده باز- مداری- جادوګر- (۲)د يوې راګنی نامه- (۳)صفت- دوکه باز- فرېبژن- ټګژن- (م- هندی)-

نټ:(نټ)صفت- ناقلار- بې ارامه- (۲)اسم- مذکر- ناقلاری- بې ارامی- بې قراری- (۲)د اور لۀ تازه پۀ بټ کښې د نينو حرکت، ټوپ وهنه-

نټوے:(نټ-وے)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ ځرخبانے- (۲)لاټو-

نټه:(نه-ټه)اسم- واحد- مؤنث- لۀ څۀ کاره انکار کونه- نۀ منله-

نثار:(ن-ثار)صفت- (۱)قربان- ځار- فدا- (۲)عاشق- مئين- (م- فارسی)-

نثار:(نه-ثار)صفت- نثر ليکونکے- نثرنګار- (م- عربی)-

نثر:(نه-ثر)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه عبارت يا ليک چې منظوم نۀ وي (۲)صفت- ګډوډ- خوروور- دانه وانه-

نثرنګار:(نه-ثر-ن-ګار)صفت- وګورئ نثار-

نج:(نج)اسم- واحد- مذکر- خپل ذات- خپل ځان- خپل کور- (م- هندی)-

نجابت:(ن-جا-بت)اسم- واحد- مذکر- شرافت- بزرګی- اصالت- (م- عربی)-

نجات:(نه-جات)اسم- واحد- مذکر- خلاصے- بخشش- موندنه- (م- عربی)-

نجار:(نه-جار)اسم- واحد- مذکر- لۀ لرګی نه د اوزار جوړولو کار کو نکے- ترکاڼ-

نجاست:(ن-جا-ست)اسم- واحد- مذکر- پليتوالے- پليتی- ګندګی- ناپاکی- (م- عربی)-

نجبا:(ن-جه-با)اسم- جمع- مذکر- د نجيب جمع- وګورئ نجيب-

نجتل:(نجۀ-تل)مصدر متعدی- (۱)پزوهل- ورټومبل- وردننه کول- ورچوکه کول- (۲)کلک نيول- مضبوط نيول-

نجتلے:(نجۀ-تۀ-لے)صفت مفعول- جمع نجتلی- مؤنث نجتلې- وګورئ نجتل-

نجتن:(نجۀ-تن)حاصل مصدر- وګورئ نجتل-

نجتنګ:(نجۀ-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ نجتل-

نجتنه:(نجۀ-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نجتل-

نجتونکے:(نجۀ-تون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نجتونکی- مؤنث

نجتونکې- وګورئ نجتل-

نجدي:(نج-دي)صفت- وګورئ نژدې-

نجس:(نه-جَس)صفت- پليت- ناپاک- (م- عربی)-

نجس العين:(نه-جه-سُل-عين)صفت- بېخي پليت- هغه ناپاک څيز چې چرې هم نهٔ شي پاکېدے لکه سپے وغېره- (م- عربی)-

نجل:(نَجل)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نجلی- جينی- نجون- (۲)هغه جينی چې کوژدن يې شوې وی-

نجلتوب:(نَجل-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ نجل جوړېدو حالت- جينکتوب-

نجلکی:(نَجل-کي)اسم- واحد- مؤنث- وړوکې نجل- وړه جينی- پېغلتوب ته نژدې جينی- سرکوزړی- نجنکی-

نجلی:(نَجهٔ-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- جينی- نجل- نجون- نجن-

نجم:(نه-جَم)اسم- واحد- مذکر- ستورے- ستاره- (م- عربی)-

نجم الثاقب:(نَج-مُث-ثا-قب)اسم مرکب- مذکر- ځلنده ستورے- پرقېدونکے ستورے- روښانه ستورے-

نجن:(نَجن)اسم- واحد- مؤنث- جمع نجونه- وګورئ نجلی-

نجنکی:(نَجن-کي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ نجلکی-

نجوم:(نه-جوم)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)دَ نجم جمع- ستوري- ستارې- (۲)دَ ستوريو دَ ګردش دَ حالاتو معلومونه-

نجومی:(نه-جو-مي)اسم- واحد- مذکر- دَ ستوريو علم لرونکے- دَ علم نجوم ماهر- جمع نجوميان-

نجون:(نَجون)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نجلی- جمع نجونه/نجونې-

نجونه:(نَجو-نه)اسم- جمع- دَ نجن او نجون جمع- وګورئ نجلی-

نجيب:(نه-جيب)اسم صفت- شريف- اصيل- بزرګ- جمع نجبا- (عربی)-

نجيب الطرفين:(نه-جي-بُل-طر-فين)صفت- هغه چې دَ مور او پلار دواړو پلو نه شريف او اصيل وی- خاندانی- (م- عربی)-

نچا:(نه-چا)اسم- واحد- مؤنث- نڅا- ګډا- (م- هندی)-

نچوړ:(نه-چوړ)اسم- واحد- مذکر- نچوړ- نڅوړ- (۱)لهٔ څهٔ څيزه وېستلے شوې اُبهٔ- عرق- (۲)خلاصه- لب لباب- (۳)انجام- نتيجه- (۴)صفت- وګورئ نچوړی- (۵)لهٔ څهٔ څيزه پهٔ زور سره اُبهٔ وېستنه- خېښش- (م- هندی)-

نچوړول:(نه-چو-ړه-ول)مصدر متعدی- نڅوړول- نچونول- خېښل- (۱)لهٔ څهٔ څيزه پهٔ زور سره اُبهٔ يا عرق وېستل- (۲)کمزورے کول- مانده کول-

نچوړون:(نه-چو-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ نچوړول-

نچوړونکے:(نه-چو-ړه-وون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نچوړونکی- مؤنث نچوړونکې- وګورئ نچوړول-

نچوړونګ:(نه-چو-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نچوړول-

نچوړونه:(نه-چو-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نچوړول-

نچوړی:(نه-چو-ړی)صفت- نچونی- نچوړ- نڅوړی- نڅوړ- (۱)هغه څيز چې اُبهٔ يا عرق ترې وويستلے شي- نچوړ کړے شوے- (۲)کمزورے کړے شوے- مانده کړے شوے-

نچوړېدل:(نه-چو-ړې-دل)مصدر لازم- نڅوړېدل- نچونېدل- خېښلے کېدل- (۱)پهٔ زور سره لهٔ څهٔ څيزه اُبهٔ يا عرق وتل- (۲)مانده کېدل- کمزورے کېدل-

نچوړېدن:(نه-چو-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نچوړېدل-

نچوړېدنګ:(نه-چو-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نچوړېدل-

نچوړېدنه:(نه-چو-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نچوړېدل-

نچوړېدونکے:(نه-چو-ړې-دون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نچوړېدونکی- مؤنث نچوړېدونکې- وګورئ نچوړېدل-

نچوړېدهٔ:(نه-چو-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ نچوړېدل-

نچول:(نه-چه-ول)مصدر متعدی- وګورئ نڅول سره دَ لوازماتو-

نچه:(نه-چه)اسم- واحد- مؤنث- نل- نے- نېچه- وګورئ نل-

نچون:(نه-چون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نچوړ-

نچونول:(نه-چو-نه-ول)مصدر متعدی- وګورئ نچوړول سره دَ لوازماتو-

نچونی:(نه-چو-نی)صفت- وګورئ نچوړی-

نچونېدل:(نه-چو-نې-دل)مصدر لازم- وګورئ نچوړېدل سره دَ لوازماتو-

نچېدل:(نه-چې-دل)مصدر لازم- وګورئ نڅېدل سره دَ لوازماتو-

نڅا:(نه-څا)اسم- واحد- مؤنث- ناچ- ګډا- رقص- ناڅ- ډانس- نچا-

نڅخ:(نه-څخ)اسم- واحد- مذکر- نڅښ- وګورئ تبر-

نڅښ:(نه-څښ)اسم- واحد- مذکر- نڅخ- وګورئ تبر-

نڅښی:(نڅ-ښی)اسم- واحد- مؤنث- چاړهٔ-

نڅل:(نه-څل)مصدر لازم- وګورئ نڅېدل-

نڅوړ:(نه-څوړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نچوړ-

نڅوړول:(نه-څو-ړه-ول)مصدر متعدی- وګورئ نچوړول سره دَ لوازماتو-

نڅوړی:(نه-څو-ړی)صفت- وګورئ نچوړی-

نڅوړېدل:(نه-څو-ړې-دل)مصدر لازم- وګورئ نچوړېدل سره دَ لوازماتو-

نڅول:(نه-څه-ول)مصدر متعدی- نچول- ګډول- پهٔ نڅا ګډا يا رقص کول-

نڅولے:(نه-څه-وهٔ-لے)صفت/مفعول- واحد- مذکر- وګورئ نڅول-

نڅون:(نه-څه-ون)حاصل مصدر- وګورئ نڅول-

نڅونکے:(نه-څه-وون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نڅونکی- مؤنث نڅونکې- وګورئ نڅول-

نڅونګ:(نه-څه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نڅول-

نڅونه:(نه-څه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نڅول-

نڅېدل:(نه-څې-دل)مصدر لازم- ګډېدل- ګډا کول- رقص کول- نڅا کول- نچېدل- نڅل- ناڅل-

نڅېدن:(نه-څې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نڅېدل-

نخېدنګ:(نه-خې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نخېدل-
نخېدنه:(نه-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نخېدل-
نخېدونکے:(نه-خې-دون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نخېدونکي- مؤنث نخېدونکې- وګورئ نخېدل-
نخېدهٔ:(نه-خې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ نخېدل-
نخۍ:(نه-خۍ)اسم- واحد- مؤنث- نوچۍ- ګهېدونکې- ړمه-
نخے:(نه-خے)اسم- واحد- مذکر- نوچے- ګهېدونکے- لښتۍ-
نحس:(نه-حس)صفت- (۱)سپېرهٔ- بدبخت- منحوس- بدمرغه- نامبارک- (۲)سمون نهٔ خوړونکے- ناسازګار- ناموافق- (م- عربی)-
نحل:(نه-حل)اسم- واحد- مؤنث- دَ شاتو مچۍ- (م- عربی)-
نحو:(نح-وهٔ)اسم- واحد- مؤنث- (۱)طريقه- چل- لار- (۲)دَ کلام دَ ترتيب دَ اصولو علم-
نحوست:(نه-حو-ست)اسم- واحد- مذکر- سپېرهٔ توب- بدبختي- بدمرغي-
نحيف:(نه-حيف)صفت- کمزورے- مانده- وچ کلک- نرے نروچکے-
نخ:(نخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)کچه ورېښم- اومهٔ ورېښم- (۲)دَ ورېښمو تار- (۳)دَ باديوې تار- منجه- مانجه- (فارسی)-
نخ:(نخ)اسم- واحد- مذکر- دَ بوټي وړُده تاژ راتاو ځانګه- څېلۍ-
نخاس:(نه-خاس)اسم- واحد- مذکر- دَ څارو يا غلامانو بازار، منډۍ- (عربی)-
نخاش:(نه-خاش)اسم- واحد- مذکر- دَ نکلي لړلو يا راچولو اله- ځمځۍ-
نختېزل:(نخ-تې-زل)مصدر متعدی- وګورئ نښتېځل-
نختۍ:(نخ-تۍ)اسم- واحد- مؤنث- غم- بلا- سانحه- مصيبت-
نخچ:(نه-خچ)اسم- واحد/جمع- مذکر- يو قسم وابهٔ-
نخچه:(نخ-چه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ الګونه- (۲)نخشه- نقشه- تصوير- (م- فارسی نقشه)-
نخچير:(نخ-چير)اسم- واحد- مذکر- ښکار کړے شوے ځناور- ښکار- (م- فارسی)-
نخره:(نخ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ناز- ادا- غمزه- (۲)ټوقه- مسخره- جمع نخرې- (م- فارسی)-
نخره باز:(نخ-ره-باز)صفت- نخرې کونکے- نخرې باز- (م- فارسی)-
نخرې باز:(نخ-رې-باز)صفت- وګورئ نخره باز-
نخرې پېښې:(نخ-رې-پې-ښې)اسم جمع- مرکب- ټوقې- مسخرې- ټوقې ټقالې-
نخړے:(نخهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو قسم حلوا- (۲)هغه وړهٔ چې پهٔ غوړيو کښې دَ غوړيو دَ صفا کولو پهٔ غرض واچولے شي-
نخسانے:(نخ-سا-نے)اسم- واحد- مذکر- لهٔ ګېډې بې نېټې غرځېدلے بچے- زيان شوے ماشوم- (افغانستان)-

نخستين:(نُ-خس-تين)صفت- وړومبنے- اوّلنے- لومړنے- وړاندينے-
نُخسه:(نُخ-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نُسخه-
نخش:(نه-خش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نقش-
نخش:(نه-خَش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نخوش-
نخشه:(نخ-شه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نقشه-
نخشه:(نخ-شه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نښه-
نخښ:(نه-خښ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځمځۍ- نخاش- (۲)وګورئ نخوش-
نخښه:(نخ-ښه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نقشه-
نخښه:(نخ-ښه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نښه-
نخل:(نه-خل)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کجورې ونه- کجوره- وګورئ خجوره- (۲)عامه ونه- (م- عربی)-
نخل بند:(نه-خل-بند)اسم- واحد- مذکر- مالي- باغوان- باغبان-
نخلستان:(نخ-لس-تان)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کجورو دَ ونو بڼ- دَ کجورو باغ- (۲)پهٔ صحرا کښې سرسبزه او ښېرازه علاقه-
نخلِ حيات:(نخ-لِ-حه-يات)اسم- واحد- مذکر- دَ ژوند ونه- ژوند-
نخلِ ماتم:(نخ-لِ-ما-تم)اسم- واحد- مذکر- هغه دَ ونې شنې ځانګې چې دَ مړي دَ جنازې سر ته ايښودلے شي-
نخوال:(نخ-وال)اسم- واحد- مذکر- ټوقې- طنز- پچموزې- ملنډې-
نخوت:(نخ-وت)اسم- واحد- مذکر- غرور- لوئي- تکبر- خودبيني- (عربی)-
نخود:(نه-خد)اسم- واحد/جمع- مذکر- چڼه- چڼې- (م- فارسی)-
نخودی:(نه-خُ-دی)صفت- دَ چڼې پهٔ شان رنګ لرونکے-
نخوش:(نه-خوش)اسم- واحد- مذکر- دَ کبانو نيولو کُنډهٔ- نرخوښ- چنګک- نرخوش- نرکوښ- نکوښ- نخش- نخښ- نرکوښه- نغوښ- نرغوښ-
نخولول:(نخو-له-ول)مصدر متعدی- پهٔ زړهٔ خوراک اخته کول- تکليفونه زغمل- نولول- کړول- پهٔ نُول اخته کول-
نخولولے:(نخو-له-وهٔ-لے)صفت/مفعول- واحد- مذکر- جمع نخولولي- مؤنث نخولولې- وګورئ نخولول-
نخولون:(نخو-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ نخولول-
نخولونکے:(نخو-له-وون-کے)فاعل- جمع نخولونکي- مؤنث نخولونکې- وګورئ نخولول-
نخولونګ:(نخو-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نخولول-
نخولونه:(نخو-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نخولول-
نخولېدل:(نخو-لې-دل)مصدر متعدی- زړهٔ خوړل- پټ پټ غم زغمل- پهٔ نُول اخته کېدل- نولېدل- کړېدل-
نخولېدلے:(نخو-لې-دهٔ-لے)صفت/مفعول- جمع نخولېدلي- مؤنث نخولېدلې- وګورئ نخولېدل-
نخولېدن:(نخو-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نخولېدل-
نخولېدنګ:(نخو-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نخولېدل-

نخولېدنه:(نخو-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نخولېدل-

نخولېدونکے:(نخو-لې-دون-کے)فاعل- جمع نخولېدونکی- مؤنث نخولېدونکې- وګورئ نخولېدل-

نخولېدهٔ:(نخو-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ نخولېدل-

نخونه:(نه-خو-نه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ سترګو یوه بیماری چې پکښې دٔ سترګو پهٔ ګټېونو کښې سپینه شان غوښه وشي- ناخُنه-

نخوے:(نه-خهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- دٔ اور کانړے- بکره- چقماق-

نخې:(نه-خې)اسم- واحد- مؤنث- لهٔ پشم نه جوړ ناهموار قالین- زلوچه-

نخے:(نه-خے)اسم- واحد- مذکر- بړستنې ته وراچولے شوے دوېم مخ- استر- غلاف-

ندا:(ن-دا)اسم- واحد- مؤنث- غږ- اواز- صدا-

نداپ:(نه-داپ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نداف- جمع نداپان-

نداف:(نه-داف)اسم- واحد- مذکر- دٔ مالوچو وملو یا وړېشلو کار کونکے- پېنډتي- پانډسی- نداپ- نداف- جمع ندافان- (م- عربی)-

ندامت:(نه-دا-مت)اسم- واحد- مذکر- پښېمانتیا- شرمندګی- پښېمانی- (م- عربی)-

ندائیه:(ن-دا-ئی-یه)اسم- واحد- مؤنث- هغه جمله چې پکښې دٔ ندا یعنې چا ته دٔ آواز یا غږ حرف وی- (م- عربی)-

ندر:(نه-در)اسم- واحد- مذکر صفت- (۱)وګورئ نذر- (۲)خار- قربان-

ندرت:(نَد-رت)اسم- واحد- مذکر- کمیابی- کمے- (۲)ښهٔ والے- غوره توب- عجیبه توب- ناآشنا توب- (م- عربی)-

ندرور:(ندرور)اسم- واحد- مؤنث- دٔ خاوند خور- جمع ندرېندې، ندروریانې-

ندیم:(نه-دیم)صفت- سره کښېناستونکے- ملګرے- مصاحب-

ندی:(نه-دی)اسم- واحد- مؤنث- وړوکے سیند- سیندګے- خوړ- لویه والهٔ-

ندے:(نه-دے)اسم- واحد- مذکر- زیم- سېب- لوندوالے- نم-

نړ:(نړ)اسم- واحد- مذکر- هلک- (م- هندی نړا)-

نذر:(نه-ذر)اسم- واحد- مذکر- (۱)منښته- صدقه- نیاز- (۲)ډالی- تحفه- پېشکش- نذرانه- جمع نذرونه-

نذرانه:(نذ-را-نه)اسم- واحد- مؤنث- ډالی- پېشکش- تحفه- هدیه- جمع نذرانې-

نذیر:(نه-ذیر)صفت- وېرونکے- دٔ آخرت وېره پهٔ زړهٔ کښې وراچونکے- دٔ حضور صلی الله علیه وآله وسلم لقب-

نر:(نر/نر)صفت- (۱)دٔ ماده ضد- مذکر- (۲)تکړه- ټورزن-

نراد:(نه-راد)صفت- دٔ نرد لوبه کونکے- وګورئ نرد-

نر پهٔ نره:(نر-پهٔ-نهٔ-ره)متعلق فعل- پهٔ نری سره- پهٔ نره- پهٔ ډاګه- پهٔ جار-

نرتوب:(نر-توب)اسم- واحد- مذکر- دٔ نر جوړېدو حالت- نری-

نرخ:(نرخ)اسم- واحد- مذکر- بیه- قیمت- شرح- جمع نرخونه-

نرخنامه:(نرخ-نا-مه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ نرخونو فهرس- بیه نامه-

نرخوش:(نر-خوش)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نخوش-

نرخوښ:(نر-خوښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نخوش-

نرد:(نرد)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٔ چوسر یا شطرنج ګیټی- (۲)دٔ شطرنج پهٔ شان یو قسم لوبه- (م- فارسی)-

نردبام:(نرد-بام)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نردبان-

نردبان:(نرد-بان)اسم- واحد- مذکر- پوړۍ- زینه- اندرپایه- نردبام- (م- فارسی)-

نرس:(نرس)اسم- واحد- مؤنث- (۱)هغه تربیت کړے شوې جینۍ یا ښځه چې پهٔ هسپتال کښې دٔ مریضانو طبی خدمت کوی- (۲)دٔ لویو خلقو پهٔ کورونو کښې دٔ ماشونو پالنه کونکې نوکره- (۳)دٔ مریض تیمارداری کونکې زنانه- دائی- (م- انګرېزی)-

نرسری:(نرس-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دٔ بوټو او ګلونو دٔ بوزغلی دٔ کرنې او دٔ هغو دٔ پالنې ځائ- ذخیره- (۲)دٔ ماشومانو ابتدائی جماعت-

نرسنګ:(نر-سنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٔ نرس کار- دٔ نرس پېشه- (۲)صفت- دٔ نرس دٔ پېشې سره نسبت لرونکے- (م- انګرېزی)-

نرسوے:(نر-سهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- (۱)یو قسم غرنیز انار- نباتاتی نوم پونیکاګرېنېټم (PUNICA GRANATUM)- (۲)انار پوستکے یا پوټکے- نسروے (عامیانه)- (۳- صفت)نمر سېزلے- نمر وهلے- پهٔ نمر سوے-

نرښځان:(نر-ښځهٔ-خان)صفت مرکب- جمع- دٔ نرښځی جمع- وګورئ نرښځګ-

نرښځګ:(نر-ښځهٔ-ځګ)صفت مرکب- مذکر- دٔ نر او ښځې دواړو صفتونه لرونکے- ښځونګ- مخنث- ایجړا- ملوټے- نرښځے- نرکټه- مورته-

نرښځے:(نر-ښځهٔ-ځے)صفت مرکب- جمع نرښځی، نرښځان- وګورئ نرښځګ-

نرغټ:(نر-غټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)غټ پیش- پړانګ پیش- پشاپیش- (۲)غټه ځنګلی بلا- نرغوټ- جمع نرغټان-

نرغزے:(نر-غهٔ-زے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مارغهٔ چې عام طور سره دٔ شولو پهٔ فصل کښې ګرځی- جمع نرغزی-

نرغوټ:(نر-غوټ)اسم- واحد- مذکر- جمع نرغوټان- وګورئ نرغټ-

نرغوښ:(نر-غوښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نخوش-

نرغون:(نر-غون)صفت- زوړ- وړاندینے- پخوانے- سابقه- نرغونے- نرغنے- لرغونے-

نرغونے:(نر-غو-نے)صفت- وګورئ نرغون-

نرک:(نهٔ-رک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دٔ ګیټی شا ته رګ- (۲)یو قسم دانه یا ننکې چې دٔ غین پهٔ سر راخېژی-

نرکچور:(نر-که-چور)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)یو قسم بوټے چې دارو ترې جوړولے شی- (۲- صفت)دوکه باز- چلولی- فرېبژن-

نرکش:(نر-کش)اسم- واحد- مذکر- موسی- نرکښ- لکشوه- جمع نرکشان- مؤنث نرکشه-

نرکښ:(نر-کښ)اسم- واحد- مذکر- مؤنث نرکښه- جمع نرکښان- وګورئ نرکش-

نرکے:(نه-ره-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د دوؤ غرونو تر مینځه د لوړوالی کږلیچ، پیچ و خم- (۲)کوتل- دره-

نرکے:(نه-ر-کے)صفت- وګورئ نروکے-

نرکته:(نر-کهٔ-ته)صفت- وګورئ نرښخک-

نرګس:(نر-ګس)اسم- واحد- مذکر- یو قسم ګل چې د انسان د سترګې په شکل وی- نلګس- نباتاتی نوم نارسی سس پویټکس (NARCISSOS POETICUS)- (م- فارسی)-

نرګس بیمار:(نر-ګهٔ-س-بی-مار)اسم مرکب- (۱)مستې سترګې- مخمورې سترګې- (۲)د معشوق سترګې-

نرګس شهلا:(نر-ګهٔ-س-شه-لا)اسم مرکب- د نرګس د ګل یو قسم چې منځ ئې تور وی-

نرګسی:(نر-ګهٔ-سی)صفت- (۱)د نرګس سره منسوب- (۲)د نرګس په شان- د نرګس خصوصیات لرونکے- (۳)یو قسم کپړه-

نرګسی:(نر-ګهٔ-سی)اسم- واحد- مذکر- هغه ښاروے چې د ګلې په سر کښې روان وی-

نرګوړان:(نر-ګو-ړان)اسم- واحد- مذکر- ګاځره- نباتاتی نوم ډاکس کروټه (DAUCUS CAROTA)-

نرګوس:(نر-ګوس)اسم- واحد- مذکر- نرګوسه- یو قسم غرنیز انار- د نباتاتی نوم د پاره وګورئ نرسوے- جمع نرګوسان- نرګوسی-

نرګوسه:(نر-ګو-سه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نرګوس- جمع نرګوسې-

نرګوښ:(نر-ګوښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نخوش-

نرګوښه:(نر-ګو-ښه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نخوش-

نرګه:(نر-ګه)اسم- واحد- مؤنث- عام مرګ- وبا-

نرلوخ:(نر-لوخ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ بېړه ګال- نباتاتی نوم (SACCHARUM CILIARE)-

نرم:(نه-رم/نه-رم)صفت- (۱)د کلک ضد- پوست- (۲)د ټینګ ضد- اُبړی- خوږین- (۳)د سخت ضد- اسان- (۴)نازک- (۵)سست- (۶)متحمل- بردبار- مؤنث نرمه- جمع مؤنث نرمې-

نرمچ:(نر-مچ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم لوئې مچ چې د ښاروؤ یا نورو ځناورو د پاسه کښېني- خرمګس- غوباړے- بګڼ-

نرموالے:(نه-رم-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نرمی-

نرمول:(نر-مه-ول)مصدر متعدی- (۱)پستول- (۲)خوږینول- اُبړی کول- (۳)اسانول- (۴)نازک جوړول- نزاکت پیدا کول- (۵)سستول- (۶)متحمل کول- بردبار جوړول-

نرمون:(نر-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ نرمول-

نرمونکے:(نر-مه-وون-کے)فاعل- جمع نرمونکی- مؤنث نرمونکې- وګورئ نرمول-

نرمونګ:(نر-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نرمول-

نرمونه:(نر-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نرمول-

نرمه:(نر-مه)اسم- واحد- مؤنث- د غوږ پوځکې- نرمې-

نرمی:(نر-می)اسم- واحد- مؤنث- د نرمېدو حالت- نرموالے-

نرمېدل:(نر-مې-دل)مصدر لازم- (۱)پستېدل- (۲)خوږینېدل- اُبړی کېدل- (۳)اسانېدل- (۴)نازک کېدل- (۵)سستېدل- (۶)متحمل کېدل- بردبار کېدل-

نرمېدن:(نر-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نرمېدل-

نرمېدنګ:(نر-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نرمېدل-

نرمېدنه:(نر-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نرمېدل-

نرمېدونکے:(نر-مې-دون-کے)فاعل- جمع نرمېدونکی- مؤنث نرمېدونکې- وګورئ نرمېدل-

نرمېده:(نر-مې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ نرمېدل-

نرمی:(نر-می)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نرمه-

نرناحق:(نر-نا-حق)متعلق فعل- چټی په چټی- برناحق- هېڅ بې هېڅه- برناحقه- نرناق- نرناقه- برناقه- نرناحقه- بې جوازه- په ناجائزه- برنحق- نرنحق-

نرناحقه:(نر-نا-حه-قه)متعلق فعل- وګورئ نرناحق-

نرناق:(نر-ناق)متعلق فعل- وګورئ نرناحق-

نرناقه:(نر-نا-قه)متعلق فعل- وګورئ نرناحق-

نرنحقه:(نر-نه-حق)متعلق فعل- وګورئ نرناحق-

نروب:(نه-روب)صفت- د ټینګ ضد- نرم- اُبژن- رقیق- اُبهٔ- مائع- نلوب-

نروچکے:(نه-روچ-کے)صفت- نروځکے- نرېچے- نرے- نرے نروچکے- نروکے- نرے پرے- کمزورے- نازک-

نروځکے:(نه-روځ-کے)صفت- وګورئ نروچکے-

نروز:(نه-روز)صفت- نرے- نروکے- نازک- کمزورے-

نروکے:(نه-رو-کے)صفت- ډېر نرے- نرے نروچکے- نرے نروځکے- مانده- کمزورے-

نره:(نه-ره/نه-ره)صفت- د نر مؤنث- تکړه- توررنه- مړنی-

نری:(نه-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نرتوب-

نریخ:(نه-ریخ)صفت- د نر متعلق- د نر سره منسوب-

نرینه:(نه-ری-نه)صفت- د نرسره منسوب- وګورئ نر-

نری والے:(نه-ری-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- د نری کېدو حالت- باریکی- نازکتوب- کمزورتیا-

نری ورخ:(نه-ری-ورخ)اسم- واحد- مذکر- یو قسم باد چې د مغرب له طرفه لګیږی-

نریه:(نر-یه)صفت- هغه چې ځه یې خوړلی نه وي- وږے- نهر-

نری:(نه-ری)صفت- دَ نری مؤنث- وګورئ نرے-

نری توری:(نه-ری-تو-ری)صفت- بېخي نری- ډېره نری- بالکل نری-

نری ملا:(نه-ری-ملا)اسم- واحد- مؤنث- دَ ملا لاندینی حصه-

نرے:(نه-رے)صفت- (۱)باریک- نازک- (۲)مانده- ټپ- کمزورے- خوار- جمع نری- مؤنث نرۍ-

نرے پرے:(نه-رے-په-رے)صفت- بېخي نرے- ډېر نرے- نرے نروچکے-

نرے نروچکے:(نه-رے-نه-روچ-کے)صفت- وګورئ نرے پرے-

نرا:(نه-ړا)اسم- واحد- مؤنث- دَ خرهٔ اواز- دَ خرهٔ هنګا- برړه- ناړ- هېڼا-

نړانده:(نړان-ده)اسم- واحد- مؤنث- ورانه- کنډر- نړېدلے ځاې-

نړاؤ:(نه-ړاؤ)اسم- واحد- مذکر- ځلور کناله زمکه- جیرب زمکه-

نړل:(نه-ړل)مصدر لازم- وګورئ ناړل-

نړول:(نه-ړه-ول)مصدر متعدي- ورانول- غرځول- لهٔ بېخه وېستل-

نړولے:(نه-ړه-وهٔ-لے)صفت/مفعول- جمع نړولی- مؤنث نړولې- وګورئ نړول-

نړون:(نه-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ نړول-

نړونکے:(نه-ړه-وون-کے)فاعل- جمع نړونکی- مؤنث نړونکې- وګورئ نړول-

نړونګ:(نه-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نړول-

نړونه:(نه-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نړول-

نړیچغ:(نه-ړی-چغ)اسم- واحد- مذکر- دَرشل- پلوړه-

نړیز:(نه-ړیز)اسم صفت- دَ نړۍ سره منسوب- نړیوال-

نړیوال:(نه-ړی-وال)صفت- (۱)دَ نړۍ وسېدونکے- دَ دنیا وسېدونکے- (۲)دَ نړۍ سره منسوب- نړیز- (افغانستان)-

نړېدل:(نه-ړې-دل)مصدر لازم- ورانېدل- غرځېدل- لهٔ بېخه وتل-

نړېدل:(نهٔ-ړې-دل)مصدر لازم- وګورئ ناړل سره دَ لوازماتو-

نړېدلے:(نه-ړې-دهٔ-لے)صفت/مفعول- جمع نړېدلی- مؤنث نړېدلې- وګورئ نړېدل-

نړېدن:(نه-ړې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نړېدل-

نړېدنګ:(نه-ړې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نړېدل-

نړېدنه:(نه-ړې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نړېدل-

نړېدونکے:(نه-ړې-دون-کے)فاعل- جمع نړېدونکی- مؤنث نړېدونکې- وګورئ نړېدل-

نړېدهٔ:(نه-ړې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ نړېدل-

نړۍ:(نه-ړۍ)اسم- واحد- مؤنث- دنیا- جهان- عالم- (افغانستان)-

نزار:(نه-زار)صفت- کمزورے- ضعیف- مانده- (م- فارسی)-

نزاع:(ن-زاع)اسم- واحد- فساد- جنګ- جګړه-

نزاکت:(نه-زا-کت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نازکتوب-

نزاهت:(نه-زا-هت)اسم- واحد- مذکر- پاکوالے- پاکیزګی- پاکی- (م- عربی)-

نزد:(نزد)متعلق فعل/صفت- نږدې- جخت- ترخوا- قریب- (۲)خیال- رائې-

نزدو:(نز-دو)صفت- وګورئ نږدې-

نزدیکت:(نز-دی-کت)اسم- واحد- مذکر- (۱)جختوالے- نږدې والے- قربت- (۲)تعلق-

نزدې:(نز-دې)صفت- وګورئ نږدې-

نزله:(نز-له)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم زکام- دَ رطوبت پهٔ سترګو، وېښتو یا دماغو پرېوتو او اثرانداز کېدو مرض-

نزول:(نه-زول)اسم- واحد- مذکر- (۱)نازلېدنه- لهٔ بره ښکته راتلنه- راکوځېدنه- واردېدنه- (۲)هغه ابهٔ چې پهٔ سترګو کښې راځی- (۳)سرکاری زمکه- ضبط کړے شوې زمکه-

نزیل:(نه-زیل)صفت- (۱)دمه کونکے- قیام کونکے- (۲)مېلمه- مسافر-

نزے:(نزے)اسم- واحد- مذکر- دَ چرګې تېرولو کانړے- برجی- برجو- بلو- چرکانړے-

نژاد:(نه-ژاد)اسم- واحد- مذکر- نسل- نسب- خاندان- ذات- خټه- (م- فارسی)-

نژادی:(نه-ژا-دی)صفت- دَ نژاد سره منسوب-

نژدې:(نژ-دې)صفت- جخت- قریب- ترخوا- نزدو- نزدې-

نژل:(نژل)مصدر لازم- وګورئ نرل-

نرل:(نرل)مصدر لازم- اینرے کول- انتروشے کول- نرے کول-

نرلے:(نرهٔ-لے)صفت/مفعول- جمع نرلی- مؤنث نرلې- وګورئ نرل-

نرن:(نرن)حاصل مصدر- وګورئ نرل-

نرنه:(نرهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نرل-

نرور:(نرور)اسم- واحد- مؤنث- دَ خوئ ښځه- جمع نرېندې-

نرونکے:(نرون-کے)فاعل- جمع نرونکی- مؤنث نرونکې- وګورئ نرل-

نرے:(نرے)اسم- واحد- مذکر- انبوشے- انتروشے- اینرے-

نس:(نس)اسم- واحد- مذکر- ګېډه- خېټه-

نسا:(ن-سا)اسم- واحد/جمع- مؤنث- ښځې- کوروداني-

نساب:(نه-ساب)اسم- واحد- مذکر- پهٔ نسب نامه پوهېدونکے- دَ نسب نامو علم لرونکے- (م- عربی)-

نساج:(نه-ساج)اسم- واحد- مذکر- (۱)کپړه ودونکے- جولا- (۲- صفت)دروغژن-

نساجی:(نه-سا-جی)اسم- واحد- مؤنث- دَ کپړې ودلو کار- جولاتوب-

نساوو:(نه-سا-وو)صفت- ډېر خوراک کونکے- ګېډه ور- خېټو-

نسائی:(ن-سا-ئی)صفت- دَ نسا سره منسوب- دَ ښځو متعلق- دَ ښځو سره منسوب-

نسایم:(نه-سا-یم)اسم- جمع- مذکر- دَ نسیم جمع- وګورئ نسیم-

نسب:(نه-سب)اسم- واحد- مذکر- اصل- خاندان- نژاد- خټه- ذات-

نسبت:(نس-بت)اسم- واحد- مذکر- (۱)تړون- ربط- تعلق- (۲)مطابقت- برابري- (۳)کوژدن- (۴)سبب- بابت- پاره-

نسبتاً:(نس-به-تن)متعلق فعل- پهٔ نسبت- پهٔ مقابله- پهٔ مطابقت-

نسبتي:(نس-به-تي)صفت- نسبت لرونکے- رشته دار- خپلوان-

نسبهے:(نس-به-هے)اسم- واحد- مذکر- ګېډه خرابېدنه- دستونه- جمع نسبهي-

نسبيت:(نه-سه-بي-يت)اسم- واحد- مذکر- (۱)نسبت لرنه- دَ نسبت کېدو حالت- (۲)دَ اضافت نظريه-

نسب نامه:(نه-سب-نا-مه)اسمِ مرکب- مؤنث- دَ خاندان شجره- دَ نسب سلسله- نسل نامه- جمع نسب نامې-

نسب نما:(نه-سب-نُ-ما)اسم مرکب- مذکر- هغه عدد لهٔ کومه چې دا معلومه وي چې يو عدد دومره برابرې برخې کړې شوے دے-

نسبي:(نه-سه-بي)صفت- (۱)نسب لرونکے- اصل لرونکے- (۲)دَ نسب سره منسوب-

نسپال:(نس-پال)اسم- واحد- مذکر- دَ انار پوټکے- نرسوے-

نس پړس:(نس-پړس)صفت- نساوړ- ګېډه ور- نسپړسائے- خېټو-

نسپړسائے:(نس-پړهٔ-سا-ئے)صفت- وګورئ نس پړس-

نست:(نست)اسم- واحد- مؤنث- کُنډه مندوه-

نست:(ن-ست)صفت- شوم- بخيل- کنجوس-

نسترن:(نس-ته-رن)اسم- واحد- مذکر- يو قسم خوشبودار سپين ګل- نباتاتي نوم رزه ګلېنډرو ليفېرا (ROSA GLANDULIFERA)- (فارسي)-

نستعليق:(نس-تع-ليق)اسم- واحد- مذکر- دَ فارسي او اردو رسم الخط- (۲- صفت)مهذب- متين- سنجيده- شائسته-

نستول:(نس-ته-ول)مصدر متعدي- نېستول- نابودول- ختمول- بربادول-

نستوڼے:(نس-تو-ڼے)اسم- واحد- مؤنث- دَ قميص هغه حصه چې لهٔ لاسه چاپېره وي- لستوڼے-

نستوے:(نس-تهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- هغه څادر يا درې چې بستره پکښې تړلے شي- بستربند-

نستېدل:(نس-تې-دل)مصدر لازم- نهٔ موجود کېدل- ختمېدل- فنا کېدل- نېستېدل- بربادېدل-

نستېدونے:(نس-تې-دو-نے)صفت- فنا کېدونکے- ختمېدونکے- فاني- (افغانستان)-

نسج:(نه-سج)اسم- واحد- مذکر- کپړې ودنه- نساجي- دَ کپړې ودلو کار-

نسخ:(نه-سخ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ترديد- منسوخېدنه- (۲)دَ عربي طرز تحريف يا رسم الخط-

نس خشکي:(نس-خُش-کي)اسم مرکب- مؤنث- ګېډه خرابېدنه- دستونه-

نس خوږي:(نس-خو-ږي)اسم- واحد- مؤنث- دَ ګېډې درد- پېچس- نس خوږے-

نس خوږے:(نس-خو-ږے)اسم- واحد- مذکر- دَ ګېډې درد- پېچس- (۲)لوړه- (۳- صفت)ګېډه ور- ډېر زيات وړے کېدونکے-

نُسخه:(نُس-خه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کتاب- رساله- (۲)هغه کاغذ چې حکيم يا ډاکټر پرې تجويز کړې دارو ليکي- دَ دارو پرچه- (۳)چل- ترکيب- طريقه-

نسر:(نه-سر)اسم- واحد- مذکر- دَ ټپوس دَ قسم يو مُردارخور مارغهٔ- ګنجي- (۲)دَ اسمان يو برج- (م- عربي)-

نسر:(نه-سر)اسم- واحد- مذکر- دَ سېلاب راوړې خځله، خشاک-

نسروے:(نس-رهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نرسوے-

نسرين:(نس-رين)اسم- واحد- مذکر- يو قسم سپين ګل-

نسغ:(نه-سغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)سوړه- سُورے- (دَ غوږ، سپېږمو وغيره)- (۲)عذاب- سزا- سکنجه-

نسق:(نه-سق)اسم- واحد- مذکر- دستور- ترتيب- انتظام- بندوبست- (م- عربي)-

نسک:(نسک)اسم- واحد جمع- مذکر- يو قسم دال- مُسور- نباتاتي نوم (ERVUM HIRSUTUM or CICERLEUS)-

نسکور:(نس-کور/نس-کور)صفت- پرمخې- اپوټه- الوړے- واژګون- مؤنث نسکوره-

نسکورول:(نس-کو-ره-ول)مصدر متعدي- (۱)اپوټه کول- پرمخې کول- سر ښکته کښه پورته کول- الوړے کول- (۲)ورانول- تباه کول-

نسکورون:(نس-کو-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ نسکورول-

نسکورونکے:(نس-کو-ره-وون-کے)فاعل- جمع نسکورونکي- مؤنث نسکورونکې- وګورئ نسکورول-

نسکورونګ:(نس-کو-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نسکورول-

نسکورونه:(نس-کو-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نسکورول-

نسکوره:(نس-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم لويه ونه- نسکوری-

نسکوره:(نس-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)کبړې- پرځونې- (۲- صفت)دَ نسکور مؤنث- وګورئ نسکور-

نسکوره:(نس-کو-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ سپېرې تنې چې دَ خوند دَ پاره پهٔ ګرېوان ټکوملے شي-

نسکورېدل:(نس-کو-رې-دل)مصدر لازم- (۱)اپوټه کېدل- پرمخې کېدل- الوړے کېدل- (۲)ورانېدل- تباه کېدل-

نسکورېدن:(نس-کو-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نسکورېدل-

نسکورېدنګ:(نس-کو-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نسکورېدل-

نسکورېدنه:(نس-کو-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نسکورېدل-

نسکورېدونکے:(نس-کو-رې-دون-کے)فاعل- جمع نسکورېدونکي- مؤنث نسکورېدونکې- وګورئ نسکورېدل-

نسکورېدهٔ:(نس-کو-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب

صيغه- وګورئ نسکورېدل-

نسکوری:(نس-کو-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نسکوره-

نسکير:(نس-کير)صفت- (۱)نژدې- جُخت- قريب- (۲)رشته دار- خپلوان-

نسکيرتوب:(نس-کير-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)نژدې والے- جختوالے- قربت- (۲)رشته دارې- خپلوې- دوستي-

نسکيرتيا:(نس-کير-تيا)اسم- واحد- مؤنث- نسکيروالے- نسکيرتوب-

نسکيرول:(نس-کی-ره-ول)مصدر متعدی- نژدې کول- جختول- قريبول- (۲)دوست جوړول- خپلول-

نسکيروالے:(نس-کير-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- نسکيرتوب- نسکيرتيا-

نسکيرون:(نس-کی-ره-ون)حاصلِ مصدر- وګورئ نسکيرول-

نسکيرونکے:(نس-کی-ره-وون-کے)فاعل- جمع نسکيرونکي- مؤنث نسکيرونکې- وګورئ نسکيرول-

نسکيرونګ:(نس-کی-ره-ونګ)حاصلِ مصدر- وګورئ نسکيرول-

نسکيرونه:(نس-کی-ره-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نسکيرول-

نسکيرېدل:(نس-کی-رې-دل)مصدر لازم- (۱)نژدې کېدل- جُختېدل- قريبېدل- (۲)خپلېدل- رشته دار کېدل- دوست کېدل-

نسکيرېدن:(نس-کی-رې-دن)حاصلِ مصدر- وګورئ نسکيرېدل-

نسکيرېدنګ:(نس-کی-رې-دنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ نسکيرېدل-

نسکيرېدنه:(نس-کی-رې-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نسکيرېدل-

نسکيرېدونکے:(نس-کی-رې-دون-کے)فاعل- جمع نسکيرېدونکي- مؤنث نسکيرېدونکې- وګورئ نسکيرېدل-

نسکيرېدهٔ:(نس-کی-رې-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ نسکيرېدل-

نسکينه:(نس-کی-نه)صفت- (۱)دَ نسکو يا مسوروو سره منسوب- (۲)دَ نسکو- لهٔ نسکو جوړه (روټۍ وغيره)-

نسکير:(نس-کير)صفت- هغه څوک چې قبض يا پېچس ې وی- مؤنث نسکيره-

نسل:(نه-سل)اسم- واحد- مذکر- اولاد- بال بچ- خاندان- کورنی- ذات- خټه- تُخم-

نسلاً:(نس-لن)متعلق فعل- پهٔ نسل- پهٔ ذات- دَ نسل لهٔ اعتباره-

نسل کشی:(نه-سل-کهٔ-شي)اسم- واحد- مؤنث- نسل زياتونه- ذات خورونه- دَ نسل زياتولو کار- نسل ګيری- افزائش نسل-

نسل ګيری:(نه-سل-ګی-ري)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نسل کشی-

نسلی:(نس-لي)صفت- (۱)دَ نسل سره منسوب- دَ نسل متعلق- (۲)نسل لرونکے- اصلي-

نس ناس:(نس-ناس)اسم- واحد- مذکر- انسان نُما بيزو- يو ذات له بيزو چې کرهٔ وړهٔ ې دَ بنيادم پهٔ شان وی- برماڼو- ځنګلي بنيادم-

نس ناسته:(نس-ناس-ته)اسم- واحد- مؤنث- نسبهے- دستونه- (افغانستان)-

نسو:(نه-سو)صفت- ښېټو- ګېډه ور- نس پړس- نسور-

نسوار:(نس-وار)اسم- جمع- مذکر- دَ تماکو ا' ايرو يا يو خاص کيميکلز نه جوړ کړے شوے مرکب چې دَ نشې پهٔ طور پهٔ خُلهٔ کښې ايښودے شی- ګزارې-

نسواره:(نس-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- يو قسم وړه کشتی چې دَ سېل دَ پاره استعمالولے شی-

نسواری:(نس-وا-ري)صفت- (۱)نسوار خرڅوونکے- (۲)نسوار استعمالوونکے- (۳)دَ نسوارو پهٔ شان رنګ لرونکے-

نسوان:(نس-وان)صفت- ښېټو- ګېډه ور- نسو- نسور- نسواند-

نسوان:(نس-وان)اسم- جمع- مذکر- دَ نسا جمع- ښځې- کوروداني- بيبيانې- زنانه- (م- عربی)-

نسوانی:(نس-وا-ني)صفت- دَ نسوان سره منسوب- دَ ښځو متعلق-

نسوت:(ن-سوت)صفت- سُوچه- خالص- صفا- (۲- اسم- واحد- مؤنث)دَ يو قسم بوټی جرړه چې پهٔ جُلابو کښې پکارولے شی- (م- هندی)-

نسور:(نه-سه-ور)صفت- وګورئ نسو-

نسيا:(نس-يا)اسم- واحد- مذکر- قرض- پور- نسيه-

نسيان:(نس-يان)اسم- واحد- مذکر- (۱)هېره- فراموشی- تېروتنه- (۲)يو مرض چې پکښې لهٔ انسانه تېر شوی واقعات هېر شی-

نسيانی:(نس-يا-ني)صفت- هېرزنکے- ياد نهٔ لرونکے-

نسيم:(نه-سيم)اسم- واحد- مذکر- دَ سحر پسته او خوشګواره هوا- دَ سحر دَ وخت نرم او لطيف باد-

نسيه:(نس-يه)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نسيا-

نسے:(نه-سے)اسم- واحد- مذکر- سوتلی- ژۍ- سوتری- مزے-

نسے:(ن-سے)اسم- واحد- مذکر- نُوسے- دَ باريک څيز دَ نيولو اله-

نشات:(ن-شات)اسم- واحد- مذکر- پيدائش- نوے ژوند شروع کېدنه-

نشات ثانيه:(ن-شا-ت-ثا-ني-يه)اسم مرکب- دوباره ژوندے کېدنه- پهٔ دوېم خل راپېدا کېدنه- دَ مقبول تهذيب او تمدن دوباره راژوندی کېدنه او ترقی موندنه-

نشادر:(ن-شا-در)اسم- واحد/جمع- مذکر- يو قسم دارو- نوشادر-

نشاسته:(ن-شاس-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناشاسته-

نشاط:(ن-شاط)اسم- واحد- مذکر- ښادی- خوشحالی- خوند- مزه-

نشاط افزا:(ن-شاط-اف-زا)صفت- خوندور- خوند زياتوونکے- (م- فارسی)-

نشاط پرست:(ن-شاط-په-رست)صفت- عېش و عشرت خوښوونکے- عېش پرست- (م- فارسی)-

نشان:(ن-شان)اسم- واحد- مذکر- نښان- نښه- (۱)علامت- اثار- (۲)جنډه- بېرغ- علم- (۳)داغ- (۴)درک- پته- (۵)نقش قدم- (۶)دَ بادشاه فرمان- (۷)اثر- (۸)يادګار- نشانی- نښانی- جمع نښانونه- (م- فارسی)-

نشانه:(ن-شا-نه)اسم- واحد- مؤنث- هغه علامت چې پهٔ ټوپک، تماچه يا غشی دَ ويشتو دَ پاره مقرر کړے شی- نښه- هدف- نخښه- نخشه-

نشاني:(ن-شا-ني)اسم- واحد- مؤنث- يادګار- نشان- نښه- نښاني-

نشاني:(نه-شا-ني)صفت- نشئ- (۱)پۀ نشه عادت شوے- نشه آور څيزونه استعمالونکے- (۲)نشه راوستونکے- نشه آور- نشوي-

نشت:(نشت)صفت- (۱)معدوم- ناموجود- (۲)حقير- سپک- (۲- اسم- واحد- مذکر)وګورئ نشتوالے-

نشتر:(نش-تر)اسم- واحد- مذکر- د صنوبر ونه- نښتر- نباتاتي نوم د پاره وګورئ نښتر-

نشتر:(نش-تر)اسم- واحد- مذکر- تېره څوکه لرونکې د دانې يا زخم څيرلو يوه اله-

نشتمن:(نشت-من)صفت- نېستمن- تنګدست- مفلس- مؤنث نشتمنه-

نشتوالے:(نشت-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)معدوم کېدنه- ناموجود کېدنه- (۲)تنګدستي- مفلسي- نشت-

نشتوکے:(نش-تو-کے)صفت- شوم- کنجوس- بخيل- مؤنث نشتوکې- جمع نشتوکي-

نشتول:(نش-ته-ول)مصدر متعدي- معدومول- ناموجود کول- فنا کول-

نشتون:(نش-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ نشتول-

نشتونکے:(نش-ته-وون-کے)فاعل- جمع نشتونکي- مؤنث نشتونکې- وګورئ نشتول-

نشتونه:(نش-ته-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نشتول-

نشتېدل:(نش-تې-دل)مصدر لازم- معدوم کېدل- ورکېدل- ناموجود کېدل- فنا کېدل-

نشتېدن:(نش-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نشتېدل-

نشتېدنه:(نش-تې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نشتېدل-

نشتېدونکے:(نش-تې-دون-کے)فاعل- جمع نشتېدونکي- مؤنث نشتېدونکې- وګورئ نشتېدل-

نشتېدۀ:(نش-تې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ نشتېدل-

نشر:(نه-شر)صفت- (۱)خور- شائع شوے- (۲- اسم- واحد- مذکر)خورونه- اشاعت- (۲)(د حشر سره پۀ راتلو)ژوندے کونه- (م- عربي)-

نشرول:(نه-شه-ره-ول)مصدر متعدي- خورول- نشرکول- شائع کول- (م- عربي)-

نشريات:(نش-ري-يات)اسم- جمع- مذکر- د ريډيو پۀ ذريعه د اواز د خورولو سلسله- براډکاسټنګ- واحد نشريه- (م- عربي)-

نشريه:(نش-ري-يه)اسم- واحد- مذکر- د نشريات واحد- وګورئ نشريات-

نشرېدل:(نه-شه-رې-دل)مصدر لازم- نشر کېدل- خورېدل- شائع کېدل-

نشست:(نه-شست)اسم- واحد- مذکر- (۱)د ناستې ځاې- چوکۍ- کرسي وغېره- (۲)برابرے- موزونيت- (۲)صحبت- سره کښېناستنه- ناسته-

نشسته:(نه-شس-ته)صفت- ناست- کښېناستلے-

نشک:(نشک)اسم- واحد/جمع- مذکر- يو قسم دال- مسور- وګورئ نسک-

نشمه:(نش-مه)اسم- واحد- مؤنث- ناز- ادا- نخره- غمزه-

نشمي:(نش-مي)صفت- ناز و ادا کونکے- نخره باز-

نشمېدل:(نش-مې-دل)مصدر لازم- ناز و ادا کول- نخرې کول-

نشمېدن:(نش-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نشمېدل-

نشمېدنګ:(نش-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نشمېدل-

نشمېدنه:(نش-مې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نشمېدل-

نشمېدونکے:(نش-مې-دون-کے)فاعل- جمع نشمېدونکي- مؤنث نشمېدونکې- وګورئ نشمېدل-

نشمېدۀ:(نش-مې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ نشمېدل-

نشو:(نه-شو)اسم- واحد- مؤنث- غټېدنه- لونېدنه-

نشو و نما:(نه-شو-ن-ما)اسم مرکب- مؤنث- راختنه او لونېدنه- راټوکېدنه او غټېدنه- پرورش موندنه- پانېدنه-

نشوي:(نه-شه-وي)صفت- (۱)د نشې سره منسوب- (۲)نشه راوستونکے- نشه آور- نشئي-

نشه:(نه-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سرور- مستي- د شراب، افيم وغېره پۀ استعمال سره پېدا کېدونکے کېفيت- (۲)بېهوشي- (۲)د شرابو، افيمو يا بل د سرور پېدا کونکي څيز استعمال- (۴)صفت- مست- مسرور- بېهوشه- (۵)غرور- کبر- لوني- خودبيني- (م- فارسي)-

نشه آور:(نه-شه-آ-ور)صفت مرکب- نشه راوستونکے- نشئي- نشه کونکے-

نشه باز:(نه-شه-باز)صفت- نشه کونکے- نشه آور څيزونه استعمالونکے- نشاني- نشئي- جمع نشه بازان-

نشئي:(نه-شه-ني)صفت- وګورئ نشاني-

نشيب و فراز:(نه-شيب-و-فه-راز)اسم مرکب- مذکر- لوړه ژوره- لوړوالے او ژوروالے- پستي او بلندي- (م- فارسي)-

نشيمن:(نه-شي-من)اسم- واحد- مذکر- د وسېدو ځاې- کور- د ارام ځاې- حاله- خاله- (م- فارسي)-

نښان:(ن-ښان)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نشان-

نښانه:(ن-ښا-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نښانه-

نښت:(نښت)اسم- واحد- مذکر- نښتنه- چمبړ کېدنه- سره يوکېدنه- نښتون- نښتيا- اتصال- نښته-

نښتر:(نښ-تر/نښ-تر)اسم- واحد- مذکر- نشتر- د صنوبر ونه- نباتاتي نوم (PINUS ROXBURGHII & PINUS WALLICHIANA)-

نښتل:(نښۀ-تل)مصدر لازم- نښلېدل- (۱)چمبړ کېدل- سره يو کېدل- لېوېدل- (۲)کېرېدل- راايسارېدل- (۲)شروع کېدل- لاس پورې کېدل- (۴)جګړه کول- لاس لګول- جنګ کول-

نښتلے:(نښۀ-تۀ-لے)صفت مفعول- جمع نښتلي- مؤنث نښتلې- وګورئ نښتل

"ئ" (ځي-زل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ی"(پيا-لي)، "ے"(تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

نښتن:(نښه-تن)حاصل مصدر- وګورئ نښتل-

نښتنګ:(نښه-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ نښتل-

نښتنه:(نښه-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نښتل-

نښتوب:(نښ-توب)اسم- واحد- مذکر- نښتېخنه- نچوړونه- څېښنه-

نښتون:(نښه-تون)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نښت-

نښتونکے:(نښه-تون-کے)فاعل- جمع نښتونکی- مؤنث نښتونکې- وګورئ نښتل-

نښته:(نښه-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ نښت- (۲)جنګ- جګړه-

نښتے:(نښه-تے)صفت- جمع نښتي- مؤنث نښتې- وګورئ نښتل-

نښتېخل:(نښ-تې-خل)مصدر متعدي- نچوړول- نڅوړول- څېښل- لهٔ څهٔ څيزه پهٔ زور سره اُبهٔ يا عرق وېستل- نښخل-

نښتېخلے:(نښ-تې-خهٔ-لے)صفت مفعول- جمع نښتېخلي- مؤنث نښتېخلې- وګورئ نښتېخل-

نښتېخن:(نښ-تې-خن)حاصل مصدر- وګورئ نښتېخل-

نښتېخنه:(نښ-تې-خهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نښتېخل-

نښتېخونکے:(نښ-تې-خون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نښتېخونکي- مؤنث نښتېخونکې- وګورئ نښتېخل-

نښخل:(نښ-خل)مصدر متعدي- وګورئ نښتېخل سره دُ ټولو مشتقاتو-

نښخے:(نښ-خے)صفت- نرښخے- ايجړا- نرګېه- (افغانستان)-

نښک:(نښک)اسم- واحد- مذکر- هغه کنډه چې لهٔ ديګچې يا کړهي نه پرې غوښه راوېستے شي- نوخښ- جمع نښکونه-

نښکی:(نه-ښه-کی)اسم تصغير- دُ نښې تصغير- وګورئ نښه-

نښلول:(نښه-له-ول)مصدر متعدي- (۱)سره يوځائ کول- سره چمبړ کول- سره لېږول- (۲)کېږول- راايسارول- (۳)شروع کول- لاس پورې کول- (۴)جنګول- پهٔ جګړه کول-

نښلولے:(نښه-له-وهٔ-لے)صفت مفعول- جمع نښلولي- مؤنث نښلولې- وګورئ نښلول-

نښلون:(نښه-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ نښلول-

نښلونکے:(نښه-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نښلونکي- مؤنث نښلونکې- وګورئ نښلول-

نښلونګ:(نښه-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نښلول-

نښلونه:(نښه-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نښلول-

نښلېدل:(نښه-لې-دل)مصدر لازم- وګورئ نښتل سره دُ ټولو مشتقاتو-

نښنے:(نه-ښه-نے)صفت- بد- ناکاره- خوشے- جمع نښني- مؤنث نښنې-

نښه:(نه-ښه)اسم- واحد- مؤنث- نخښه- (۱)وګورئ نشان- (۲)نشانه- نښانه- هدف- نخښه- پهٔ ټوپک تماچه يا لينده باندې دُ ويشتو پهٔ غرض مقرر کړے شوے علامت-

نص:(نص)اسم- واحد- مذکر- (۱)سامان قط پهٔ قط ايښودنه- (۲)دُ څهٔ خبرې معلومات يا سپيناوے کونه- (۳)صفت- صفا- صريح او واضحه (حکم، کلام، حديث، آيت)- (م- عربي)-

نصاب:(ن-صاب)اسم- واحد- مذکر- (۱)سرمايه- پنګه- هغه مال چې زکوٰة ورکول پرې واجب وي- (۲)دُ مدرسې يا تعليم دُ پاره مقرر کړے شوے کتابونه- کورس- (۳)کتنه- اندازه- تول- (۴)جرړه- بېخ- بنياد-

نصارا:(نه-صا-را)صفت- دُ عيسىٰ عليه السلام پېروکار- مسيحي- عيسائي- نصارىٰ- نصراني-

نصارىٰ:(نه-صا-را)صفت- وګورئ نصارا-

نصائح:(نه-صا-ئح)اسم- جمع- مذکر- دُ نصيحت جمع- نېکې مشورې- نصيحتونه-

نصب:(نه-صب)صفت- (۱)ولاړ- ودرېدلے- لګ- لګېدلے- قايم- (۲)زور- زبر- (م- عربي)-

نصب العين:(نص-بل-عين)اسم مرکب- مذکر- (۱)اصل مطلب، مقصد- (۲)اصول- لار-

نصبول:(نه-صه-به-ول)مصدر متعدي- (۱)ودرول- لګول- لکول- قائمول- (۲)مقررول-

نصبون:(نه-صه-به-ون)حاصل مصدر- وګورئ نصبول-

نصبونکے:(نه-صه-به-وون-کے)فاعل- جمع نصبونکي- مؤنث نصبونکې- وګورئ نصبول-

نصبونه:(نه-صه-به-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نصبول-

نصبېدل:(نه-صه-بې-دل)مصدر لازم- ودرېدل- لګېدل- لکېدل- قائمېدل- (۲)مقررېدل-

نصبېدن:(نه-صه-بې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نصبېدل-

نصبېدنه:(نه-صه-بې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نصبېدل-

نصبېدونکے:(نه-صه-بې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نصبېدونکي- مؤنث نصبېدونکې- وګورئ نصبېدل-

نصبېدهٔ:(نه-صه-بې-دهٔ)حاصل مصدر او دُ ماضي استمراري دُ واحد غائب صيغه- وګورئ نصبېدل-

نصر:(نه-صر)اسم- واحد- مذکر- (۱)مدد- ملګرتيا- ياري- مرسته- (۲)فتح- کټه- ظفر- (م- عربي)-

نصراني:(نص-را-ني)صفت- وګورئ نصارا-

نصرت:(نص-رت)اسم- واحد- مذکر- (۱)کټه- فتح- (۲)مدد- ملګرتيا- مرسته- (م- عربي)-

نصف:(ن-صف)صفت- نيم- نيمائي- دوېمه برخه- ۱/۲-

نصف النهار:(نص-فن-نه-هار)اسم مرکب- مذکر- (۱)هغه فرضي کرښه چې لهٔ يو قطب نه تر بل قطب پورې کښلے شي- (۲)دُ غرمې وخت-

نصوح:(نه-صوح)صفت- نصوحا- (۱)سوچه- خالص- (۲)پخه توبه وېستونکے-

نصوحا:(نه-صو-حا)صفت- وګورئ نصوح-

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېښ"(نو-کا-ره)، "زبر"(ک-تاب)، "جزم"(شکون)، "هٔ"(ز-ړه)، "هٔ"(ډو-بې-دهٔ)

نصوص:(نُ-صُوص)اسم- جمع- مذکر- دَ نص جمع- وګورئ نص-

نصیب:(نه-صیب)اسم- مذکر- (۱)قسمت- تقدیر- برخه- نصیبه- (۲)حصه- (۲)حاصل-

نصیبور:(نه-صی-به-وَر)صفت- ښهٔ نصیب لرونکے- نصیبي- بختور-

نصیبه:(نه-صی-به)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نصیب-

نصیبي:(نه-صی-بي)صفت- وګورئ نصیبور- (م- عربی)-

نصیحت:(نه-صی-حت)اسم- واحد- مذکر- نېکه مشوره- پند- جمع نصائح او نصیحتونه- (م- عربی)-

نصیر:(نه-صیر)صفت- (۱)امداد کونکے- مرسته کونکے- (۲)دوست- ملګرے- (م- عربی)-

نصېري:(نُ-صے-ري)صفت- دَ نصېر پېرو- هغه فرقه یا دَ هغې غړے چې حضرت علی علیه السلام خدائ ګڼي- (م- عربی)-

نضارت:(نه-ضا-رت)اسم- واحد- مذکر- خلا- تازګي- رونق- (م- عربی)-

نضبح:(نَضبح)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مېوې پخوالے- مېوه پخېدنه- (۲)دَ طب پهٔ اصطلاح کښې دَ فاسدې مادې پهٔ نرمولو سره خارجونه- (م- عربی)-

نطاق:(نه-طاق)صفت- خبره کونکے- ویونکے- (م- عربی)-

نطفه:(نُط-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مني- دَ انسان اُبهٔ چې اولاد ترې پېدا کېږي- (۲)اولاد-

نطفهٔ حرام:(نُط-فه-ءِ-حه-رام)صفت مرکب- ناجائزه اولاد- حرامي-

نطق:(نُ-طق)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خبرو یا وینا قوت- دَ ګویایی قوت- (۲)خبره- وینا- (۳)سپاسنامه-

نظارت:(نه-ظا-رت)اسم- واحد- مذکر- (۱)کتنه- پام کونه- (۲)ساتنه- نګهباني- محافظت- (۳)دَ ناظر عهده- (م- عربی)-

نظاره:(نه-ظا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لیدنه- نظر اچونه- (۲)سېل- تماشه- ننداره-

نظافت:(نه-ظا-فت)اسم- واحد- مذکر- صفائي- پاکوالے- پاکي- (م- عربی)-

نظام:(ن-ظام)اسم- واحد- مذکر- (۱)بندوبست- انتظام- (۲)سلسله- ترتیب- (۳)دَ ملغلرو لړۍ- (۴)جرړه- بنیاد- بېخ- (۵)ړولي کونه- ښانسته کونه- جوړونه- (۶)طریقه- چل-

نظامت:(ن-ظا-مت)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ ناظم عهده یا کار- (۲)بندوبست- انتظام-

نظام شمسي:(ن-ظا-مِ-شم-سي)اسم مرکب- دَ فیثاغورث یوناني نظام پهٔ کوم کښې چې نمر دَ عالم مرکز ګرځولے شوے دے-

نظامي:(ن-ظا-مي)صفت- دَ فوځ یا لښکر انتظام کونکے یا ناظم- (م- عربی)-

نظامیه:(ن-ظا-مي-یه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جنګي فوځ- (۲)دَ تصوف سلسله چې دَ حضرت نظام الدین اولیاء رحمة الله علیه سره منسوب ده-

نظائر:(نه-ظا-ئر)اسم- جمع- دَ نظیر جمع- وګورئ نظیر-

نظر:(نه-ظر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ لیدو قوت- بصارت- بینائي- (۲)کاتهٔ- کتنه- لیدنه- (۳)غور- فکر- پام- (۴)نګراني- ساتنه- (۵)دَ چا دَ لیدو پهٔ وجه پهٔ څهٔ ښهٔ څیز، انسان یا ځناور وغېره بد اثر کېدنه- (م- عربی)-

نظرباز:(نه-ظر-باز)صفت- (۱)هغه څوک چې پهٔ کتو ئې پهٔ څهٔ ښهٔ څیز، انسان یا ځناور وغېره بد اثر پرېوځي- بدنظر لرونکے- لهٔ نظره کونکے- (۲)نظر اچونکے- نېغ نېغ کتونکے- سترګې جنګونکے- (۳)چالاک- مردم شناس-

نظربازي:(نه-ظر-با-زي)اسم- واحد- مؤنث- سترګې جنګونه- نېغ نېغ کتنه- حسن پرستي-

نظربند:(نه-ظر-بند)صفت- هغه چې پهٔ نګراني کښې وساتلے شي- پهٔ یو خاص ځائې کښې پابند کړے شوے-

نظربندي:(نه-ظر-بن-دي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)پهٔ نګراني کښې ساتنه- پهٔ یو خاص ځائې کښې پابند کونه- لهٔ یو مقرره ځائې نه پهٔ وتو پابندي لګونه- (۲)دَ جادو عمل- جادوګري-

نظرثاني:(نه-ظر-ثا-ني)اسم مرکب- مؤنث- دَ اصلاح پهٔ نظر دوباره کتنه- اصلاح کونه- (م- عربی)-

نظرمات:(نه-ظر-مات)اسم مرکب- مذکر- (۱)هغه کُنجکه، تعویذ یا چیړه چې لهٔ بدو سترګو دَ بچ ساتلو پهٔ غرض پهٔ څهٔ څیز پورې یا دَ ماشومانو غاړه کښې یا پښو پورې تړلے شي- (۲)یوه کلمه چې دَ نظر ماتولو پهٔ وخت بار بار ونیلے شي-

نظرماتے:(نه-ظر-ما-تے)اسم مرکب- مذکر- (۱)دَ نظر ماتولو عمل- دَ سپېلنیو لوګی کولو یا دَ دم دُرما پهٔ ذریعه دَ بد نظر اثر لرې کونه- نظر وچ- (۲)دَ نظر ماتولو ذریعه، سپېلني، شکرانه، صدقه وغېره-

نظروچ:(نه-ظر-وُچ)اسم مرکب- مذکر- وګورئ نظرماتے-

نظري:(نه-ظه-ري)صفت- (۱)لهٔ نظره شوے- هغه چې دَ بدو سترګو اثر پرې شوے وي- (۲)سپک- لهٔ نظره غورځېدلے- (۳)هغه چې دَ پوهېدو دَ پاره پرې دَ ډېر فکر او غور ضرورت وي- (۴)ناقص- خراب- (۵)هغه علم چې پکښې دَ موجوداتو پهٔ تصور بحث کېږي-

نظریاتي:(نظ-ري-یا-تي)صفت- دَ نظریو یا نظریاتو سره منسوب-

نظریه:(نظ-ري-یه)اسم- واحد- مؤنث- هغه مسئله چې پکښې دَ غور و فکر نه کار واخستے شي- اُصول- جمع نظریې نظریات- (م- عربی)-

نظریه ارتقا:(نظ-ري-یه-ءِ-ار-ت-قا)اسم مرکب- دَ ډارون هغه نظریه چې هغه پکښې دَ علم حیاتیات پهٔ رڼا کښې دَ ذي روحو پېدائش او افزائش بیانوي- (م- عربی)-

نظریه اضافیت:(نظ-ري-یه-ءِ-ا-ضا-في-یت)اسم مرکب- مؤنث- دَ آئن سټائن

نظریه چې پکښې دا ښئي چې زمان و مکان مطلق حقیقت نهٔ دے بلکې اضافي حیثیت لري- (م- عربي)-

نظم:(نه-ظم)اسم- واحد- مذکر- (۱)بندوبست- انتظام- نظام- (۲)موزون کلام- شعر- (۳)دَ شاعرۍ یو مخصوص صنف چې کڼ قسمونه لري- (م- عربي)-

نظم و نسق:(نظم-و-نه-سق)اسم مرکب- بندوبست- انتظام- (م- عربي)-

نظیر:(نه-ظیر)اسم- واحد- مذکر- (۱)مثال- نمونه- (۲)دَ لویو عدالتونو فیصله چې دَ ماتحتو عدالتونو دَ پاره لار یا دلیل وي- جمع نظائر، نظیرونه- (م- عربي)-

نظیف:(نه-ظیف)صفت- پاک- حلال- (م- عربي)-

نعت:(نعت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ستائینه- تعریف- مدح- (۲)دَ حضور صلّی الله علیه وآله وسلّم په شان کښې دَ تعریف شعرونه- (م- عربي)-

نعتیه:(نع-تی-یه)صفت- دَ نعت سره منسوب- دَ نعت متعلق-

نعره:(نع-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ناره-

نعش:(نعش)اسم- واحد- مذکر- (۱)تابوت- دَ مړي صندوق- (۲)لاش- مړے-

نعل:(نعل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نال(۲)-

نعلبکے:(نعل-به-کے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نالبکے-

نعل بند:(نعل-بند)صفت- وګورئ نال بند-

نعل بندي:(نعل-بن-دي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نال بندي-

نعم:(ن-عم)اسم- جمع- مذکر- دَ نعمت جمع- وګورئ نعمت- (م- عربي)-

نعم البدل:(نع-مل-به-دل)اسم مرکب- مذکر- ښه بدله- ښکه معاوضه- غوریزه عوض- (م- عربي)-

نعمت:(نع-مت)اسم- واحد- مذکر- مال- دولت- خونده ور څیزونه- انعام بخښنه- پېرزوینه- دَ الله تعالی ورکړه- جمع نعم، نعمتونه- (م- عربي)-

نعوذ:(نه-عو-ذ)کلمه- مونږ پناه غواړو- (م- عربي)-

نعوذ بالله:(نه-عو-ذ-بل-لاه)کلمه- مونږ دَ خدایٔ نه پناه غواړو- خدایٔ مو دې بچ وساتي- دَ چا دیني بزرګ یا څیز سره دَ بې ادبۍ په موقعه وئیلے شي- (م- عربي)-

نعیم:(نه-عیم)اسم- واحد- مذکر- (۱)نعمت- مال- (۲)نیکي- (۳)لاس رسېدنه- (۴)په انعام کښې ورکړے شوے څیز- (۵)صفت- نعمت لرونکے- دَ نعمت خاوند-

نغارچي:(نه-غار-چي)صفت- نغاره وهونکے- نغاره غږونکے- نقارچي- ډنهورچي- جمع نغارچیان- (م- فارسي)-

نغاره:(نه-غا-ره)اسم- واحد- مؤنث- ډنهوره- ډمامه- نوبت- نقاره- (م- فارسي)-

نغاړل:(نغا-ړل)مصدر متعدي- وګورئ نغښتل سره دَ ټولو مشتقاتو-

نغاړي:(نغا-ړي)اسم- واحد- مؤنث- دَ کپړې یا وښو حلقه چې دَ څهٔ دروند څیز په سر راوړلو په وخت په سر ایښودے شي- منجیله- نغوړي-

نغامه:(نغا-مه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ مغاند -

نغت:(نغت)اسم- واحد- مذکر- راګرمونه- راپارونه- تحریک- لمسه- لمسون- نغته- نغوته- اشاره-

نغتان:(نغهٔ-تان)صفت- منونکے- اورېدونکے- غوږ نیونکے- نغتاند- نغوتان- نغوتاند-

نغتاند:(نغهٔ-تاند)صفت- وګورئ نغتان-

نغتل:(نغهٔ-تل)مصدر متعدي- وګورئ نغوتل سره دَ واړو مشتقاتو-

نغته:(نغهٔ-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نغت-

نغد:(نغد)صفت/متعلق فعل- دَ قرض ضد- تیار- موجود- لاس په لاس- په موقع حاضر- (عام طور باندې دَ رقم سره استعمالیږي)- مؤنث نغده- (م- عربي نقد)-

نغدول:(نغ-ده-ول)مصدر متعدي- رقم په موقع تیارول- روپۍ حاضرول او لاس په لاس اخستل- نغدې روپۍ لاس له راوستل- کره کول-

نغدون:(نغ-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ نغدول-

نغدونکے:(نغ-ده-وون-کے)فاعل- جمع نغدونکي- مؤنث نغدونکې- وګورئ نغدول-

نغدونګ:(نغ-ده-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نغدول-

نغدونه:(نغ-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نغدول-

نغدي:(نغ-دي)اسم- واحد- مؤنث- حاضر رقم- موجودې پیسې یا روپۍ- نغدیت-

نغدیت:(نغ-دي-یت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نغدي-

نغدېدل:(نغ-دې-دل)مصدر لازم- روپۍ یا رقم په موقع حاضرېدل او لاس په لاس اخستلے کېدل- نغد رقم لاس له راتلل- کره کېدل- دَ څهٔ کار یا څیز په بدل کښې نغدې روپۍ راتلل-

نغدېدن:(نغ-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نغدېدل-

نغدېدنګ:(نغ-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نغدېدل-

نغدېدنه:(نغ-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نغدېدل-

نغدېدونکے:(نغ-دې-دون-کے)فاعل- جمع نغدېدونکي- مؤنث نغدېدونکې- وګورئ نغدېدل-

نغر:(نغر)اسم- واحد- مذکر- نغرد- نغرښت- نغړ- (۱)راکښنه- دَ زمکې اوبهٔ وغیره جذب کونه- (۲)په یو وار لهٔ حلقه تېرونه- غړچونه- اپونه- (۳)زغمنه- برداشت-

نغرتل:(نغر-تل)مصدر متعدي- وګورئ نغرل-

نغرد:(نغرد)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نغر-

نغردل:(نغر-دل)مصدر متعدي- وګورئ نغرل سره دَ ټولو مشتقاتو-

نغرښت:(نغهٔ-رښت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نغر-

نغرل:(نغهٔ-رل)مصدر متعدي- نغرول- نغړدل- نغرتل- (۱)راکښل- جذب کول- (۲)الواړ خوړل- په یو وار لهٔ حلقه تېرول- غړچول- اپول- (۳)زغمل-

برداشت کول-

نغرلے:(نغۀ-رۀ-لے)صفت مفعول- جمع نغرلي- مؤنث نغرلې- وګورئ نغرل-

نغرندونکے:(نغۀ-رن-دو-کے)صفت- د نغرل صفت- وګورئ نغرل-

نغرنه:(نغۀ-رۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نغرل-

نغرونکے:(نغۀ-رون-کے)فاعل- جمع نغرونکي- مؤنث نغرونکې- وګورئ نغرل-

نغرے:(نغه-رے نغۀ-غه-رے)اسم- واحد- مذکر- د اور بلولو ځائ- د اخلی پخلی ځائ- انغرے- اورغالے-

نغړ:(نغړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نغر-

نغړاند:(نغۀ-ړاند)اسم- واحد- مذکر- کتنه- څارنه- انتظار- (افغانستان)-

نغړاندے:(نغۀ-ړان-دے)صفت- کتونکے- څارونکے- انتظار کونکے- جمع نغړاندی- مؤنث نغړاندې-

نغړد:(نغړد)صفت- (۱)چخنبی- لتاړ- چیت پیت- ریت پیت- چپړاخ- (افغانستان)- (۲- اسم- واحد- مذکر)وګورئ نغر-

نغړدل:(نغړ-دل)مصدر متعدی- وګورئ نغرل سره د ټولو مشتقاتو-

نغړنزے:(نغړن-زے)اسم- واحد- مذکر- د صنوبر یا نښتر د ونې میوه- زنغوزے- چنغوزے- چلغوزے- جمع نغړنزی- نباتاتی نوم پینس جیرارډیانه -(PINUS GERARDIANA)

نغشت:(نغشت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نغښت-

نغشتل:(نغش-تل)مصدر متعدی- وګورئ نغښتل-

نغښت:(نغښت)اسم- واحد- مذکر- (۱)قط په قط راټولونه- راغنډونه- د نغښتلو عمل- نغشت- (۲- صفت متعلق فعل) ټول- لڼ ځېلمې

نغښتل:(نغښ-تل)مصدر متعدی- نغاړل- نغشتل- (۱)قط په قط راټول- راغنډول- (۲)لنډول- مختصر کول-

نغښتلے:(نغښ-تۀ-لے)صفت مفعول- جمع نغښتلي- مؤنث نغښتلې- وګورئ نغښتل-

نغښتن:(نغښ-تن)حاصل مصدر- وګورئ نغښتل-

نغښتنګ:(نغښ-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ نغښتل-

نغښتنه:(نغښ-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نغښتل-

نغښتونکے:(نغښ-تون-کے)فاعل- جمع نغښتونکي- مؤنث نغښتونکې- وګورئ نغښتل-

نغښتے:(نغښ-تے)صفت- قط په قط راغنډ- راټول- (۲)مختصر- لنډ-

نغښے:(نغۀ-ښے)اسم- واحد- مذکر- وربل- کمڅې- کونځې- کوڅې-

نغلاند:(نغۀ-لاند)صفت- (۱)ورسترګے- ارواوږے- (۲)مشتاق- خواهشمند- غښتونکے-

نغم:(نه-غم)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لغم-

نغم:(نغم)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)وګورئ غنم- (۲)د اینګرانو او زرګرانو بیاتی یا ټبنچې-

نغمه:(نغ-مه)اسم- واحد- مؤنث- لوبه- سندره- ترانه- جمع نغمې-

نغن:(نغن نه-غن)اسم- واحد- مؤنث- د غنمو روټی- پوړی- نغند-

نغند:(نغند)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نغن-

نغند:(نه-غند)اسم- واحد- مذکر- ضرر- اذیت- تکلیف-

نغوتان:(نغو-تان)صفت- وګورئ نغتان-

نغوتاند:(نغو-تاند)صفت- وګورئ نغتان-

نغوتل:(نغو-تل)مصدر متعدی- کرمول- راپارول- لمسول- اماده کول- نغتل- تحریک ورکول-

نغوتلے:(نغو-تۀ-لے)صفت مفعول- جمع نغوتلي- مؤنث نغوتلې- وګورئ نغوتل-

نغوتن:(نغو-تن)حاصل مصدر- وګورئ نغوتل-

نغوتنګ(نغو-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ نغوتل-

نغوتنه:(نغو-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نغوتل-

نغوتونکے:(نغو-تون-کے)فاعل- جمع نغوتونکي- مؤنث نغوتونکې- وګورئ نغوتل-

نغوته:(نغو-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نغت- جمع نغوتې-

نغوتے:(نغو-تے)صفت مفعول- لمسېدلے- راپارېدلے- اماده کړے شوے-

نغوړ:(نغوړ)اسم- واحد- مذکر- ناغه- جرمانه- د ملامتیا جرم-

نغوړی:(نغو-ړی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نغاړې-

نغوړل:(نغوه-ړل)مصدر متعدی- غور سره اورېدل- غوږ کېښودل- توجه سره اورېدل-

نغوړلے:(نغوه-ړۀ-لے)صفت مفعول- جمع نغوړلي- مؤنث نغوړلې- وګورئ نغوړل-

نغوړن:(نغوه-ړن)حاصل مصدر- وګورئ نغوړل-

نغوړنه:(نغوه-ړۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نغوړل-

نغوړونکے:(نغوه-ړون-کے)فاعل- جمع نغوړونکي- مؤنث نغوړونکې- وګورئ نغوړل-

نغوړېدل:(نغوه-ړې-دل)مصدر لازم- غور سره اورېدلے کېدل- توجه سره اورېدلے کېدل- غوږ کېښودلے کېدل-

نغوښ:(نه-غوښ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نخوش-

نغوږ:(نغول)اسم- واحد- مذکر- د اُبو موری- د اُبو وېستلو سُورے- د اُبو رو-

نغومل:(نغو-مل)مصدر متعدی- ښویول-

نغومېدل:(نغو-مې-دل)مصدر لازم- ښوئېدل-

نغونې:(نه-غو-نې)اسم- واحد- مؤنث- د پیو لوشلو یو قسم مخصوصه جالیداره دوښی، لوغی، ډیبی یا دګی-

نغیل:(نه-غیل)اسم- واحد- مذکر- د ګنبد یا ګنبت دننه ګیر چاپېره هوار ځائ- جمع نغیلونه-

نغے:(ن-غے)اسم- واحد- مذکر- داغ- نښه- نشان- جمع نغی-

نفاذ:(ن-فاذ)اسم- واحد- مذکر- (۱)جاری کېدنه- لاګو کېدنه- (۲)دَ يو څيز لۀ بل څيزه وتنه- (م- عربي)-

نفاس:(ن-فاس)اسم- واحد- مذکر- هغه وينه چې دَ ماشوم لۀ پېدا کېدو نه پس تر څلوېښتو ورځو پورې لۀ زنانه نه څي- (م- عربي)-

نفاست:(ن-فا-ست)اسم- واحد- مذکر- پاکوالے- صفائي- خوبي- ښۀ والے- (م- عربي)-

نفاق:(ن-فاق)اسم- واحد- مذکر- بې اتفاقي- پۀ زړۀ کښې يو څۀ او پۀ خُلۀ بل څۀ- عداوت- پټه دشمني- (م- عربي)-

نفت:(نه-فت)اسم- واحد جمع- مذکر- (۱)دَ خاورو تېل- (۲)بارود- (م- فارسي)-

نفتالين:(نف-تا-لين)اسم- جمع- مذکر- يو قسم بدبويه دارو چې لۀ تارکولو وېستے شي او دَ پتنګانو وژلو دپاره پکارولے شي- هانبېړوکارېن-

نفر:(نه-فر)اسم- واحد جمع- مذکر- کس- سړے- بنده- (۲)له دريو نه تر لسو کسانو پله- (م- عربي)-

نفرت:(نف-رت)اسم- واحد- مذکر- کرکه- ناخوښي- کراهت- (م- عربي)-

نفري:(نف-ري)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ کسانو پله-دَ کار کونکيو پله- دَ مزدورانو ټولے- (۲)دياړی- دَ مزدور دَ ورځې اُجرت يا کار- مزدوري- (م- عربي)-

نفرين:(نف-رين)اسم- واحد- مذکر- ښېره- بددعا- لعنت- غندنه- (م- عربي)-

نفس:(نه-فس)اسم- واحد- مذکر- (۱)سا- دم- (۲)ساعت- ګړي- لحظه-(م- عربي)-

نفس:(نفس)اسم- واحد- مذکر- (۱)ځان- روح- ذات- وجود- (۲)حقيقت- اصل- اصليت- (۲)خلاصه- لب لباب- (۴)ذکر- غين- (۵)دَ زنانه وجود، بدن- (۲)دَ بدکار خواهش-

نفس اماره:(نف-س-ا-ما-ره)اسم مرکب- مذکر- هغه انساني خواهش چې بنده پۀ بدکار راڅروي- بدی طرف ته مائله کونکے خواهش-

نفسانفسي:(نف-سا-نف-سي)اسم مرکب- ځان ځاني- دَ خپل خپل نفس فکر- خپل خپل غم کونه- نفسي نفسي-

نفساني:(نف-سا-ني)صفت- دَ نفس سره منسوب- دَ نفس متعلق-

نفس پرست:(نفس-په-رست)صفت- دَ نفس منونکے- عېش و عشرت کونکے- عياش- نفس پرور-

نفس پرستي:(نفس-په-رس-تي)اسم مرکب- مؤنث- دَ نفس مننه- عېش و عشرت کونه- عياشي-

نفس پرور:(نفس-پر-ور)صفت- وګوره نفس پرست-

نفسي نفسي:(نف-سي-نف-سي)اسم مرکب- مؤنث- وګوره نفسانفسي-

نفع:(نه-فع)اسم- واحد- مؤنث- دَ نقصان ضد- ګټه- فائده- امدن-

نفقه:(نه-فه-قه)اسم- واحد- مؤنث- دَ کور خرڅه- دَ کور ماته ګډه- دَ بال بچ خرڅه- (م- عربي)-

نفل:(نه-فل)اسم- واحد- مذکر- هغه (عبادت) چې واجب نۀ وي بلکې دَ ثواب دَ پاره وکړے شي- نافله-

نفلي:(نف-لي)صفت- دَ نفل سره منسوب-

نفوذ:(نُ-فوذ)اسم- واحد- مذکر- پکښې اثر کونه- دننه اثر کونه- (م- عربي)-

نفور:(نُ-فور)اسم- واحد- مذکر- نفرت کونه- بېزه کونه- (م- عربي)-

نفور:(نه-فور)صفت- نفرت کونکے- بېزه کونکے- نفير- متنفر-

نفوس:(نه-فوس)اسم- جمع- مذکر- (۱)دَ نفس يعنې روح جمع- نفسونه- روحونه- ذاتونه- (۲)کسان- نفري چې ځان ځان له شمار کړے شي- تنان-

نفي:(نه-في)اسم- واحد- مؤنث- دَ اثبات ضد- نه- انکار-

نفير:(نه-فير)صفت- (۱)نفرت کونکے- نفور- متنفر- کرکه کونکے- (۲)هغه خوله چې پۀ څۀ کار کښې مخکښې مخکښې کيږي- (۲)هغه اواز چې دَ ودۀ بنده لۀ خلې يا سپېړمو خېژي- (۴)سرنا- توري- (۵)فرياد- ژړا- وازيلا- (م- عربي)-

نفيري:(نه-في-ري)اسم- واحد- مؤنث- سرنا- توري- (م- عربي)-

نفيس:(نه-فيس)صفت- ښۀ- پاک- غوره- قيمتي- دَ وچتې درجې- (م- عربي)-

نقاب:(نه-قاب)اسم- واحد- مذکر- دَ زنانوْ دَ مخ پټولو پرده- برقه- پړونے- جمع نقابونه- (م- عربي)-

نقاد:(نه-قاد)صفت- تنقيد کونکے- دَ څۀ څيز ښۀ او بد ظاهرونکے- کره او کوټه معلومونکے- جمع نقادان-

نقارچي:(نه-قار-چي)صفت- وګوره نغارچي-

نقاره:(نه-قا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګوره نغاره-

نقاش:(نه-قاش)صفت- (۱)ګلکاري کونکے- نقش و نګار جوړونکے- (۲)تصويرونه جوړونکے- مصور- (م- عربي)-

نقاشي:(نه-قا-شي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ګلکاري- نقش و نګار جوړونه- (۲)مصوري- دَ تصويرونو جوړولو کار-

نقاضت:(نه-قا-ضت)اسم- واحد- مذکر- زړۀ بداوے- ورانه- خفګان- (م- عربي)-

نقاط:(ن-قاط)اسم- جمع- مذکر- دَ نقطې جمع- وګوره نقطه- (م- عربي)-

نقال:(نه-قال)صفت- نقل کونکے- پېښې کونکے- نقلي- پېښې ګر- جمع نقالان- (م- عربي)-

نقالي:(نه-قا-لي)اسم- واحد- مؤنث- نقل کونه- پېښې کونه- پېښې ګري-

نقاهت:(نه-قا-هت)اسم- واحد- مذکر- کمزورتيا- ناتواني- (م- عربي)-

نقائص:(نه-قا-ئص)اسم- جمع- مذکر- دَ نقص جمع- عېبونه- خامي- (م- عربي)-

نقب:(نه-قب)اسم- واحد- مذکر- هغه سورے چې دَ غلا پۀ غرض دَ چا پۀ دېوال کښې وکړے شي- کنډر-

نقب زن:(نه-قب-زن)صفت- د غلا په غرض د چا په دېوال کښې سورے کونکے- کنډر کونکے- غل-

نقب زني:(نه-قب-زه-ني)اسم مرکب- مؤنث- د غلا په غرض د چا په دېوال کښې سورے کونه- کنډر کونه- غلا کونه-

نقد:(نه-قد)صفت- (۱)د قرض ضد- وګورئ نغد- (۲- اسم- واحد- مذکر)کتنه- کره کوټه معلومونه-

نقره:(نق-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)سپین زر- چاندي- (۲)هر هغه څيز چې سپین وي- (۳)سپین اس- (م- عربی)-

نقش:(نقش)اسم- واحد- مذکر- (۱)صورت- تصویر- (۲)ګلکاري- بوټي، ګلونه جوړونه- (۳)هغه نوم یا عبارت چې په ټاپه جوړ کړے شوے وي- مُهر- ټاپه- چاپ- (۴)درک- نام و نشان- (۵)تعویذ چې پکښې عددونه یا خانې وي- نښه- علامت- (۶)خیال- تصور- (۷)اثر- تاثیر- (۸)جادو- منتر- ټوټکه- (۹)اپره لیک- (۱۰)هغه کږه خط چې ماشومانو ته په تختئ اچولے شي- جمع نقشونه، نقوش-

نقشبندیه:(نقش-بن-دي-یه)اسم- واحد- مؤنث- د تصوف یوه سلسله چې د حضرت خواجه بهاؤالدین رحمة الله علیه نه راروانه ده-

نقش و نګار:(نقش-و-ن-ګار)اسم مرکب- مذکر- د بوټیو او ګلونو جوړولو کار- ګلکاري- د قلمکاري کار-

نقشه:(نق-شه)اسم- واحد- مؤنث- نخچه- نخشه- (۱)تصویر- خاکه- (۲)صورت- شکل- مخ- (۳)حُلیه- خدوخال- کړه وړه- (۴)نمونه- مثال- (۵)سانچه- قالب- (۶)حال- کیفیت- عالم- (۷)طور- طریقه- (۸)فهرست- (م- فارسی)-

نقشه کشي:(نق-شه-که-شي)اسم مرکب- مؤنث- نقشه راکښنه- نقشه جوړونه- د نقشې د جوړولو یا ترتیبولو کار-

نقص:(نقص)اسم- واحد- مذکر- کمے- خامي- عیب- بدوالے- خرابوالے- نقصان- فرق- جمع نقصونه- (م- عربی)-

نقصان:(نق-صان)اسم- واحد- مذکر- (۱)کمے- خامي- نقص- عیب- کوتاهي- (۲)تاوان- زیان- خساره- (۳)تباهي- بربادي- ضیاع- (۴)تکلیف- درد- جمع نقصانونه، نقصانات- (م- عربی)-

نقصاني:(نق-صا-ني)صفت- د نقصان نه ډک- نقصان رسونکے- وګورئ نقصان-

نقض:(نقض)اسم- واحد- مذکر- ماتونه- ماتېدنه- ورانے- (م- عربی)-

نقض عهد:(نق-ض-عه-هد)اسم مرکب- وعده ماتېدنه- وعده ماتونه- بې ژبي- وعده خلافي- له خپل عهد نه اوړېدنه-

نقطه:(نق-طه)اسم- واحد- مؤنث- ټکے- مرکز- صفر-

نقل:(نه-قل)اسم- واحد- مذکر- (۱)له یوه ځایه بل ځاې ته تلنه- تبدیلي- بدلون- (۲)له یوه کاغذه بل کاغذ ته اړونه- (۳)نمونه- نظیر- مثال- (۴)لطیفه- (۵)حکایت- بیان- روایت- (۶)پېښې- (۷)د مقدمې کاپي چې له عدالته رااوویستلے شي- جمع نقلونه، نقول- (م- عربی)-

نقلچي:(نه-قل-چي)صفت- د نقال یا نقلي اسم تصغیر- وګورئ نقال-

نقل نویس:(نه-قل-نه-ویس)صفت- نقل لیکونکے- د عدالت محرر-

نقل نویسي:(نه-قل-نه-وي-سي)اسم مرکب- د نقل لیکلو یا کولو کار- منشي توب- محرري-

نقلول:(نق-له-وِل)مصدر متعدي- (۱)له یوه ځایه بل ځاې ته لېږل- (۲)له یوه کاغذه په بل کاغذ لیکل- (۳)حکایت کول- روایت کول- بیان کول-

نقلون:(نق-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ نقلول-

نقلونکے:(نق-له-ون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نقلونکي- مؤنث نقلونکې- وګورئ نقلول-

نقلونګ:(نق-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نقلول-

نقلونه:(نق-له-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ نقلول-

نقلي:(نق-لي)صفت- (۱)وګورئ نقال- (۲)د اصلي ضد- جعلي-

نقلیه:(نق-لي-یه)صفت- د نقل سره منسوب- د نقل سره متعلق-

نقلېدل:(نق-لې-دل)مصدر لازم- (۱)له یوه ځایه بل ځاې ته تلل- (۲)له یوه کاغذه په بل کاغذ لیکلے کېدل- (۳)حکایت کېدل- روایت کېدل- بیانېدل-

نقلېدن:(نق-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نقلېدل-

نقلېدنګ:(نق-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نقلېدل-

نقلېدونکے:(نق-لې-دون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نقلېدونکي- مؤنث نقلېدونکې- وګورئ نقلېدل-

نقلېده:(نق-لې-ده)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ نقلېدل-

نقود:(ن-قود)اسم- جمع- د نقد جمع- وګورئ نغد-

نقوش:(ن-قوش)اسم- جمع- د نقش جمع- وګورئ نقش-

نقول:(ن-قول)اسم- جمع- د نقل جمع- نقلونه- وګورئ نقل-

نقي:(نه-قي)صفت- پاک- صفا- سوچه- خالص- (م- عربی)-

نقیب:(نه-قیب)صفت- (۱)د قوم مشر- سردار- (۲)د خلقو د نسبونو او ذاتي حالاتو علم لرونکے- (۳)تشهیر کونکے- خلق خبرونکے- ږنډورچي- (۴)تعریف کونکے- مدح خوان- (۵)د شاهي سورلئ نه وړاندې وړاندې اواز کونکے- چوبدار- (۲- اسم- واحد- مذکر)شپېلئ- (م- عربی)-

نقیصه:(نه-قي-صه)صفت- کمزورے- ناتوان- ضعیف- (م- عربی)-

نکات:(ن-کات)اسم- جمع- د نکته جمع- نکتې- باریکي- (۲)هغه خبرې چې هر څوک پرې نه پوهیږي-

نکاح:(ن-کاح)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- د شریعت مطابق د ملک او جینئ تړون- واده- عقد-

نکاح نامه:(ن-کاح-نا-مه)اسم مرکب- هغه کاغذ چې د نکاح د وخت فیصله پرې لیکلے شوې وي-

ي (ښي-رل)، ي (مې-ره-وِل)، ی (پیا-لې)، ې (تن ...) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

نکاحي:(ن-کا-حي)صفت- دَ نکاح سره منسوب- دَ نکاح متعلق-

نکاس:(ن-کاس)اسم- واحد- مذکر- (۱)لهٔ کوره دَ بهر تلو لاره- (۲)دَ اُبو دَ بهر وتو ځایَ یا لار- (۳)لهٔ چا د روپیو یا پیسو وصولولو لار یا صورت-

نکاسي:(ن-کا-سي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ مال و اسباب وتنه، خرڅېدنه- (۲)لیږنه- برآمد- روانګي- (۳)لهٔ ښاره بهر تلنه یا وتنه- (۴)لهٔ چا نه روپی، پیسې وصولېدنه- (۵)دَ زمکې د مغه محصول میزان چې دَ زمکې مالک يَ لهٔ کروندګره وصول کړي-

نکبت:(نک-بت)اسم- واحد- مذکر- غریبي- مفلسي- بدحالي- (م- عربي)-

نکته:(نک-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)باریکي- ژوروالے- (۲)باریکه خبره- ژوره خبره- (۳)دَ اس دَ خلې څرمن- جمع نُکتې، نکات-

نکته چین:(نک-ته-چین)صفت- نکتې راویستونکے- باریکي لټونکے- خامي راویستونکے-

نکته چیني:(نک-ته-چي-ني)اسم مرکب- مؤنث- نکتې راویستنه- باریکي لټونه- خامي راویستنه-

نکټائي:(نک-ټا-ئي)اسم- واحد- مؤنث- د کپړې پټۍ چې لهٔ مرۍ نه چاپېره دَ قمیص کالر سره تړلے شي- (م- انګریزي- NECKTIE)-

نکره:(نه-کَ-ره)صفت- د یو قسم دَ ېږو څیزونو مشترکه نامه لکه مېز، کرسي، کتاب وغېره-

نکریزه:(نک-ري-زه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نکریزې-

نکریزې:(نک-ري-زې)اسم- جمع- مؤنث- یو قسم بوټے او دَ مغې پاڼې چې عام طور سره دغه پاڼې وچې کړے شي او بیا وړهٔ کړے شي چې زنانه يَ د ښځو لاسونو دَ سرهٔ کولو پکار راولي- حنا- نکریزه نباتاتي نوم (LOWSONIA ALBA or L. INERMIS or L. SPINOSA)-

نکرے:(نک-رے)اسم- واحد- مذکر- یو قسم مرض چې دَ بدن متاثره څرمن تکه سپینه کړي- برص-

نکړې نکړې:(نک-ړې-نک-ړې)اسم مرکب- (۱)ټال مټول- انې بانې- پېل-ځنډ- انکار-

نکم:(نه-کم)اسم- واحد- مذکر- ناز- ادا- نخره- غمزه-

نکو:(ن-کو)صفت- دَ نېکو مخفف- ښهٔ- نېک-

نکوفرجام:(ن-کو-فر-جام)صفت- نېک انجام- نېک- نېک فرجام- (م- فارسي)-

نکومحضر:(ن-کو-مح-ضر)صفت- ښهٔ خوئ لرونکے- نېک خصلت-

نکوئي:(ن-کو-ئي)اسم- واحد- مؤنث- ښهٔ والے- نېکي- (م- فارسي)-

نکهت:(نک-هت)اسم- واحد- مذکر- دَ ګلونو بوئ- خوشبوئي- جمع نکهتونه- (م- فارسي)-

نکیر:(نه-کیر)اسم- واحد- مذکر- پهٔ قبر کښې دَ مړی سره سوال و جواب کونکې فرښته- (م- عربي)-

نکیرین:(نه-کي-رین)اسم- جمع- مذکر- مغه دواړه فرښتې چې پهٔ قبر کښې دَ مړی سره سوال و جواب کوي-

نګ:(نګ)اسم- واحد- مذکر- غمے- نګینه- نګین- جوهر-

نګار:(ن-ګار)اسم- واحد- مذکر- (۱)تصویر- نقش- (۲)بُت- (۳)محبوب- معشوق- (۴)ږول- سنګار- (۵)نکریزې- دَ نکریزو چاپ-

نګارخانه:(ن-ګار-خا-نه)اسم مرکب- دَ تصویرونو ځایَ، مکان-

نګاسه:(ن-ګا-سه)اسم- واحد- مؤنث- پټې یا غلې غلې خبرې- ګونګسے- ګنګوسے- جمع نګاسې-

نګاه:(ن-ګاه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)لیدنه- نظر- (۲)دَ لیدو قوت- بصارت- بینائي- (۳)سترګه- (۴)پېژندګلو- شناخت- (۵)پام- توجه- مهرباني- (۶)ننداره- نظاره- (۷)نګراني- نظربندي- (۸)امید- یقین- توقع- طمع- (م- فارسي)-

نګاهبان:(ن-ګاه-بان)صفت- پام لرونے- حفاظت کونکے- نګران- څوکۍ کونکے- محافظ- نګهبان- (م- فارسي)-

نګاهباني:(ن-ګاه-با-ني)اسم- واحد- مؤنث- پام لرنه- حفاظت کونه- څوکۍ- نګراني- څوکیداري- نګهباني- (م- فارسي)-

نګر:(نه-ګر)اسم- واحد- مذکر- ښار- کلے- قصبه- بلدیه-

نګران:(نګ-ران)صفت- کتونکے- پام کونکے- محافظ- نګاهبان- (م- فارسي)-

نګراني:(نګ-را-ني)اسم- واحد- مؤنث- کتنه- پام لرنه- حفاظت- نګاهباني-

نګښے:(نګښ-ښے)اسم- واحد- مذکر- دَ زنانوٗ دَ تندي دراړو ږو ته کمڅۍ کړی وېښته-

نګلے:(نګ-لے)اسم- واحد- مذکر- پخکړے- ترکاري- سالن- لاوڼ- نګولے-

نګورے:(نه-ګو-رے)صفت- ړوند- نابینا- جمع نګوري-

نګوړے:(نه-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- بادرنګ- ترپوړے- دانګوړے- نباتاتي نوم کوکومس سی ټی وس یا یو ټیلی سیمس (CUCUMIS SATIVUS or C. UTILISSIMUS)- جمع نګوړي- (افغانستان)-

نګوس:(نګوس)اسم- واحد- مذکر- تصویر- عکس- فلم- نګوښ-

نګوسار:(نه-ګو-سار)صفت- وګورئ نګونسار-

نګوښ:(نګوښ)اسم- واحد- مذکر- دَ یوې پېښې کار نهٔ کونه- دَ یوې پېښې دَ معذورۍ حالت- ګوډوالے- ګډتوب-

نګوښل:(نګو-ښل)مصدر متعدي- وګورئ نګوښول-

نګوښول:(نګو-ښه-ول)مصدر متعدي- پهٔ یوه پښه بېکاره کول- پهٔ یوه پښه معذورول- نګوښل- ګړول-

نګوښون:(نګو-ښه-ون)حاصل مصدر- وګورئ نګوښول-

نګوښونکے:(نګو-ښه-ون-کے)فاعل- جمع نګوښونکي- مؤنث نګوښونکې- وګورئ نګوښول-

نګوښونګ:(نګو-ښه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نګوښول-

نګوښونه:(نګو-ښه-وه-نه)حاصل مصدر- وګورئ نګوښول-

نګوښېدل:(نګو-ښې-دل)مصدر لازم- پهٔ یوه پښه کنډمېدل، بېکاره کېدل- پهٔ یوه پښه معذورېدل- ګډېدل-

نګوښېدن:(نګو-ښې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نګوښېدل-

نګوښېدنګ:(نګو-ښې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نګوښېدل-

نګوښېدنه:(نګو-ښې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ نګوښېدل-

نګوښېدونکے:(نګو-ښې-دُون-کے)فاعل- جمع نګوښېدونکی- مؤنث نګوښېدونکې- وګورئ نګوښېدل-

نګوښېدۀ:(نګو-ښې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ نګوښېدل-

نګون:(نه-ګون)صفت- (۱)نسکور یا سرښکته کُنه پورته خوړند- اپوټه- اوېزان- نګوسار- نګونسار- (۲)کوز- راکوښتې-

نګونسار:(نه-ګون-سار)صفت- نګوسار- نګون- اپوټه- سرښکته کُنه پورته اوېزان-

نګه:(نه-ګه)صفت- سُوچه- پاک- خالص- صفا-

نګهبان:(ن-ګه-بان)صفت- وګورئ نګاهبان-

نګهباني:(ن-ګه-با-ني)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نګاهباني-

نګهت:(نګ-هت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نکهت-

نګین:(نه-ګین)اسم- واحد- مذکر- قیمتی کاڼے- غمے- نګ- نګینه- جوهر- (م- فارسی)-

نګینه:(نه-ګی-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نګین-

نل:(نَل)اسم- واحد- مذکر- د ګنی په شان بندونه لرونکے بوټے چې منځ ئې تش یا پوک وی- نچه- نے- نیچه- نباتاتی نوم ارونډو ډونکس (ARUNDO DONAX)- جمع نلونه-

نلکه:(نل-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د اُسپنې یا پلاسټک نه جوړه نلی- (۲)د اُبو بمبه-

نلګس:(نل-ګس)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نرګس-

نلګے:(نل-ګے)اسم تصغیر- د نل تصغیر- وګورئ نل- جمع نلګی-

نلوب:(نه-لوب)صفت- وګورئ نروب-

نله:(نه-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نلی- د اُسپنې، لرګی، پلاسټک وغیره نه جوړ نل نُما څیز- (۲)د څرمنې مشک چې د تېلو د اوړلو راړولو د پاره پکارولے شی- څوښکه- (۳)د پښې لویځ هډوکے- (۴)شپېلی-

نلی:(نه-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وګورئ نله وړومبنی معنی- شپېلی-

نلے:(نه-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د پښې یا د لاس لویځ هډوکے- (۲)د هډوکی مغز- جمع نلی-

نم:(نَم)صفت عددی- نهم- د اتم او لسم تر مینځه حیثیت لرونکے-

نم:(نَم)اسم- واحد- مذکر- لوندوالے- تروالے- رطوبت- (۲)حیا- شرم- لحاظ- (۲- صفت)لُوند- تر-

نما:(نُ-ما)صفت- لاحقه- چې د ښودونکی یا ظاهرونکی په معنی کښې استعمالیږی لکه قبله نما وغیره- (۲)د "غندې" یا "ورته" په معنی کښې هم استعمالیږی لکه انسان نما، حیوان نما وغیره- (م- فارسی)-

نمازپېښین:(نماز-په-ښین)اسم- واحد- مذکر- لۀ غرمې نه پسته وخت- د غرمې او نمازیګر تر منځه وخت- ماسپښین- نماسپښین-

نمازختن:(نماز-خ-تن)اسم- واحد- مذکر- د شپې وړومبنی برخه- لۀ نماښام نه پس وخت- ماسختن- نماسختن- ماخوستن-

نمازدیګر:(نماز-دی-ګر)اسم- واحد- مذکر- د ورځې وروستنی برخه- د نمازپېښین او نماښام تر منځه وخت- نمازیګر- مازیګر-

نمازی:(نما-زی)صفت- هغه چې نمونځ پرې کېدے شی- پاک- نمانځې-

نمازیګر:(نما-زی-ګر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نمازدیګر-

نماست:(نماست)صفت- وګورئ لماست-

نماستل:(نماس-تل)مصدر لازم- وګورئ لماستل سره د واړه مشتقانو-

نماستېدل:(نماس-تې-دل)مصدر لازم- وګورئ لماستل سره د ټولو مشتقانو-

نماستے:(نماس-تے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لماسته-

نماښام:(نما-ښام)اسم- واحد- مذکر- وګورئ لماښام-

نماښامے:(نما-ښا-مے)صفت- ماښامے- (۱)د نماښام یا لماښام سره منسوب- د نماښام متعلق- (۲- اسم- واحد- مذکر)کچه نماښام یا لماښام-

نماک:(نماک)اسم- واحد- مذکر- رنګ- ږول- شان-

نمانځل:(نمان-ځل)مصدر متعدی- (۱)کول- خاص ورځ یا تقریب سر ته رسول- (۲)پالل- عزت ورکول- پالنه کول-

نمانځلے:(نمان-ځۀ-لے)صفت مفعول- جمع نمانځلی- مؤنث نمانځلې- وګورئ نمانځل-

نمانځن:(نمان-ځن)حاصل مصدر- وګورئ نمانځل-

نمانځنګ:(نمان-ځنګ)حاصل مصدر- وګورئ نمانځل-

نمانځنه:(نمان-ځۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نمانځل-

نمانځونکے:(نمان-ځون-کے)فاعل- جمع نمانځونکی- مؤنث نمانځونکې- وګورئ نمانځل-

نمانځونے:(نمان-ځو-نے)صفت- (۱)د نمانځل صفت- وګورئ نمانځل- (۲)نمونځ کونکے- نمونځ ګوذار-

نمانځې:(نمان-ځی)صفت- وګورئ نمازی-

نماړی ستن:(نما-ړی-ستن)اسم مرکب- مؤنث- وګورئ لماړی ستن-

نمائش:(ن-ما-ئش)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښودنه- خلقو ته ښکاره کونه- نمود- ظاهرداری- (۲)د مصنوعاتو یا نورو خاص څیزونو خلقو ته د ښودلو مېله-

نمائش ګاه:(ن-ما-ئش-ګاه)اسم مرکب- د نمائش ځاې- د څۀ خاص څیزونو خلقو ته د ښودلو ځاې- د نمائش د مېلې ځاې-

نمائشی:(ن-ما-ء-شی)صفت- د نمائش سره منسوب- د نمائش متعلق- د ښودلو څیز-

نمائېدل:(نما-ئې-دل)مصدر لازم- ښکاره کېدل- څرګندېدل- ښودلے کېدل- (م- نما فارسی)-

نمانېدلے:(نما-ېَ-دهٔ-لے)صفت مفعول- جمع نمانېدلی- مؤنث نمانېدلې- وګورئ نمانېدل-

نمانېدن:(نما-ېَ-دن)حاصل مصدر- وګورئ نمانېدل-

نمانېدنګ:(نما-ېَ-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نمانېدل-

نمانېدنه:(نما-ېَ-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نمانېدل-

نمانېدونکے:(نما-ېَ-دون-کے)فاعل- جمع نمانېدونکی- مؤنث نمانېدونکې- وګورئ نمانېدل-

نمانېدهٔ:(نما-ېَ-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ نمانېدل-

نمايان:(نَ-ما-يان)صفت- (۱)ښکاره- څرګند- عيان- ظاهر- (۲)نوموړے- نامور- ياد-

نمائندګی:(نَ-ما-ين-دَ-ګي)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ څهٔ ځای باندې موجود کېدل- قائم مقامی-

نمائنده:(نَ-ما-ين-ده)صفت- واحد- مذکر- ترجمان- قائم مقام- نائب-

نمائيل:(نَ-ما-ئيل)مصدر متعدی- ښيل- اوروَل- ښودل- څرګندول-

نمبر:(نم-بر)اسم- واحد- مذکر- تعداد- درجه- پېره- وار- نوبت-

نمبوزګ:(نم-بو-زګ)اسم- واحد- مذکر- تربوزګ- نقاب- پرده- بوزی-

نمڅے:(نم-څے)اسم- واحد- مذکر- د ټپوسانو د ذات يو مردار خور مارغهٔ- کرګس- لم ځټ- لم چټ-

نمژن:(نم-ژن)اسم صفت- واحد- مذکر- لوند- تر کړے شوے- لوند شوے- نوژن-

نمد:(نمد)اسم- واحد- مذکر- د وړی يا د پشم بستر- توشک- نرم- ملائم-

نمدبل:(نم-د-بل)اسم- واحد- مذکر- لاوَن- ترکاری- کټغ- سالن- لندبل- نکولے- پوروَنے-

نمدساز:(نمد-ساز)صفت- واحد- مذکر- نمد جوړوونکے-

نمر:(نمر)اسم- واحد- مذکر- د شمسی نظام د مېنځ ستورے چې زمکې د پاره د رڼا او تود والی مستقل ذريعه ده- نور-

نمرپرس:(نمر-پهٔ-رس)اسم- واحد- مذکر- يو قسم ګل چې پهٔ نمر پسې مخ اړوی- نباتاتی نوم ميلی اينتهس (HELIANTHUS)-

نمرپرست:(نمر-پهٔ-رست)اسم- واحد- مذکر- (۱)وګورئ نمرپرس- (۲)صفت- نمر ته سجدې کوُنکے- د نمر عبادت کوُنکے-

نمرپرېواتهٔ:(نمر-پرې-وا-تهٔ)اسم- واحد- مذکر- د نمر پرېوتو طرف- قبله- مغرب- لوئيديز-

نمرپرېواتيز:(نمر-پرې-وَ-تيز)صفت- واحد- مذکر- لوئيديز-

نمرخاتهٔ:(نمر-خا-تهٔ)اسم- واحد- مذکر- د نمر راختو طرف- مشرق- راختيز-

نمرختيز:(نمر-خ-تيز)صفت- واحد- مذکر- مشرقی- نمرخاتهٔ طرف-

نمرګل:(نمر-ګل)اسم- واحد- مذکر- نمرپرس- نمرپرست- د يو قسم ګل دے چې پهٔ نمر پسې مخ ګرځوی-

نمرمخے:(نمر-مهٔ-خے)صفت- واحد- مذکر- نمر پهٔ رنګ مخ لرونکے- ښکلے- ښائسته محبوب- معشوق-

نمری:(نمه-ری)اسم- جمع- مؤنث- لباس- جامې- کپړې-

نمرنيل:(نم-رنيل)مصدر- د اَبو سره لوښی وينځل-

نمرينه:(نم-ری-نه)اسم- واحد- مؤنث- د لوښو صفائی-

نمری تار:(نمه-ړی-تار)صفت- واحد- مذکر- بخيل- شوم- کنجوس- (۲)بې عزت-

نمړی:(نمه-ړی)اسم- واحد- مؤنث- لقمه- نواله- ګپه- نوړی-

نمړے:(نمه-ړے)صفت- واحد- مذکر- وړومبے- زوړ- مقدم-

نمړے:(نمه-ړے)صفت- واحد- مذکر- نامزد- مشهور-

نمزدګ:(نمز-دګ)اسم- واحد- مذکر- جومات- جمات-

نمسانمسی:(نمه-سا-نمه-سی)اسم مرکب- جمع- د ځوی لور اولاد نمسی او نمسی نسل-

نمط:(نه-مط)اسم- واحد- مذکر- روش- طريقه- طرف- طور-

نمک:(ن-مک)اسم- واحد- مذکر- د مخ مالګه- د مخ پوَل- (۲)مالګه- (۲)رزق- خوراکه-

نمک حرام:(ن-مک-حه-رام)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حرام رزق خوړونکے- حرام خور- حرامه معاوضه اخستونکے- (۲)د چا نيکی او احسان هېرونکے- بې وفا- نمک مردار-

نمک حلال:(ن-مک-ح-لال)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)حلال رزق خوړونکے- حلال خور- حلاله مزدوری اخستونکے- (۲)د چا نيکی او احسان نهٔ هېرونکے- وفادار-

نمک حلالی:(ن-مک-ح-لا-لی)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حلاله ګټه خوړنه- (۲)د چا نيکی او احسان نهٔ هېرونه- وفاداری-

نمکخوار:(ن-مک-خوار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د چا نمک يا رزق خوړونکے- د چا ډوډی ته ناست- (۲)مالګه خوړونکے-

نمکدان:(ن-مک-دان)اسم- واحد- مذکر- د مالګې لوښے- هغه لوښے چې مالګه پکښې کېښودے شی-

نمک مردار:(ن-مک-مر-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- نمک حرام-

نمکين:(ن-م-کين)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د مالګی سره متعلق- مالګين- (۲)چې مالګه پکښې وی- ترسکون- (۳)سکاڼ- ښکلے- ړولی- زړهٔ راکښونکے- مؤنث نمکينه- (م- فارسی نمک)-

نمنا:(نم-نا)اسم- واحد- مؤنث- بغاوت- نافرمانی- سرکشی- سرغړانه- (افغانستان)-

نمناک:(نم-ناک)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه چې نم پکښې وی- نمژن- لوند- تر- مؤنث نمناکه- جمع مؤنث نمناکې- (م- فارسی)-

نمنځ:(نمنځ)اسم- واحد- مذکر- عزت- قدر- احترام-

نمنځ:(نمنځ)اسم- واحد- مذکر- مونځ- نمونځ-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکون)، ه "(ز-ړه)، هٔ "(پو-ښې-دهٔ)

نمنځل:(نَمَن-ځَل)مصدر متعدی- نمانځل- عزت کول- درنول- درناوے کول-

نمنځلے:(نَمَن-ځَ-لے)صفت- واحد- مذکر- مُعزز- محترم- عزتمند-

نمنځنه:(نَمَن-ځَ-نه)حاصلِ مصدر- عزت ورکونه- محترم ګڼنه-

نمو:(نَ-مو)اسم- واحد- مؤنث- لوئېدنه- ټوکېدنه- وده کونه- (م- فارسی مذکر)-

نمود:(نه-مود)اسم- واحد- مذکر- (۱)ښکاره کېدنه- ځرګندېدنه- (۲)نمائش- ښودنه-

نمودار:(نه-مو-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)ځرګند- ښکاره- په نظر راتلونکے- (۲)افسر- سردار- رهبر- ښکاره سړے- نوموړے سړے-

نمودے:(نه-مو-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- ښکاره- ځرګنده- (فارسی)-

نموړل:(نَمو-ړل)مصدر متعدی- مړل- تاؤ ورکول-

نموړه:(نمو-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ تومه-

نموړل:(نَمو-ړل)مصدر متعدی- ګومنځ کول- خوراک- ګومنزول- ژمنزول-

نمونه:(نَ-مو-نه)صفت- واحد- مذکر- (۱)مثل- نظیر- (۲)نقشه- نقل- سانچه- قالب- نشانه- نښه-

نمونیا:(نَ-مُون-یا/نَ-مو-نیا)اسم- واحد- مؤنث- دَ بیماری په دوران دَ پرپوس سوروالے او پاړسوب-

نمی:(نَ-مِی)اسم- واحد- مؤنث- لوندوالے- تری-

نمېر:(نَ-مېر)اسم- واحد- مذکر- دَ یو قسم سُور رنګ لرونکے ګُل-

نمېری:(نَ-مې-ری)اسم- جمع- مؤنث- (۱)لباس- جامې- کپړې- (۲)دَ ښځو حیض راتلل-

نمېسل:(نمې-سل)مصدر متعدی- (۱)نموړل- مالش کول- (۲)نغښتل- تاوول- تاوېدل- (۲)نیول- (۳)لیکل- (متروک)-

نن:(نن)اسم- متعلق فعل- نن ورځ- ننئ ورځ- موجوده ورځ- نن سبا- نن پرون- حال-

ننځړه:(نن-ځړه)اسم- واحد/جمع- مذکر- وګورئ رنځړه-

ننځکه:(نن-ځ-که)اسم- واحد- مؤنث- کوډۍ- لولی- ناوکی- پوتلی-

ننداپ:(نن-داپ)اسم صفت- واحد- مذکر- نداف- نداپ-

ننداپ توب:(نن-داپ-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ ننداپ کار- نداپی- دَ ننداپ جوړېدو حالت- نداپی- ندافی-

نندارتون:(نن-دار-تُون)اسم- واحد- مذکر- تماشاګاه- دَ تماشې کولو ځائ-

نندارچی:(نَن-دار-چِی)صفت- واحد- مذکر- تماشه کوُنکے- تماشګیر- تماشبین-

نندارغالے:(نن-دار-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- هغه ځائ چرته چې ننداره تماشه ښودلے کیږی- تهیټر- (افغانستان)-

ننداره:(نن-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- تماشه- نمائش-

نندارى:(نَن-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نندرامی-

نندرامی:(نن-درا-مِی)اسم- واحد- مؤنث- کابلی روپی- نندارى-

نندرپایه:(نندر-پا-یه)اسم- واحد- مؤنث- اندرپایه- پوړی- دَ لرګی یا دَ اسپنې پوړی چې دَ یو ځائ نه بل ځائ ته وړلے کېدے شی-

نندرور:(نند-رور)اسم- واحد- مؤنث- ایندرور- دَ خاوند خور-

نندرورزے:(نند-رور-زے)اسم- واحد- مذکر- دَ نندرور خوئ- دَ خاوند دَ خور خوئ- ندروزے-

نندره:(نند-ره)اسم- واحد- مؤنث- نېندره- هغه روپی چې په واده کښې خلق دَ بدل په طور ورکوی-

نندیار:(نند-یار)اسم- واحد- مؤنث- دَ خاوند خور- نندرور- ندوور- جمع نندیارې-

نندړه:(نند-ړه)اسم- جمع- مذکر- رانځړه- رنځړه- ننځړه-

ننرور:(نن-رور)اسم- واحد- مؤنث- نږور- دَ خوئ ښځه-

ننږے:(ننږ-ړے)اسم- واحد- مذکر- پرنجے- تروشے- اینګے- نژے- اټسکے- انبوشے- (افغانستان)-

نن سبا:(نن-سَ-با)اسم مرکب- واحد- مذکر- (۱)خبره ځنډونه- ټال مټول کونه- ایلې بانې کونه- (۲)حال او مستقبل-

ننکی:(نَ-نَ-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړه دانه- دانه- ښنځه- ښنځکی- دَ ځرمن دننه نو زوې پیدا کېدنه- اتشی-

ننګ:(ننګ)اسم- واحد- مذکر- غېرت- جمعیت- ابرو-

ننګارے:(ننګ-ګا-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کټې او مسواکې ګټې تر مینځه خوره فاصله- (۲)په نهه ننګارې نومې لوبه کښې دَ هر یوه ړکی نامه-

ننګړے:(ننګ-ګه-ړے)اسم- واحد- مذکر- انکے- ځنګه- اینګړے-

ننګړے:(ننګ-ړے)صفت- واحد- مذکر- رنګے- دَ ګڼ ضد- رنګړے-

ننګښه:(ننګ-ګه-ښه)اسم- واحد- مؤنث- رکن- ستن- ذمه وار کس- ممبر- (افغانستان)-

ننګوړے:(ننګ-ګو-ړے)اسم- واحد- مذکر- (۱)تریوړے- بادرنګ- (افغانستان)- (۲)وړوکے انار- تریو او وړوکے انار-

ننګون:(ننګ-ګون)اسم- واحد- مذکر- لنګون- لنګتون- لنګېدنه- بچے راوړنه-

ننګ و نام:(ننګ-وُ-نام)اسم مرکب- واحد/جمع- مذکر- لحاظ- شرم- غېرت- ننګ و ناموس- عزت- عصمت-

ننګ و ناموس:(ننګ-وُ-نا-مُوس)اسم مرکب- واحد/جمع- مذکر- غېرت- عزت- حیا- عصمت- شرم-

ننګه:(ننګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- غېرت- جمعیت- طرفداری-

ننګیال:(ننګ-یال)اسم صفت- وګورئ ننګیالے-

ننګیال توب:(ننګ-یال-توب)اسم- واحد- مذکر- ننګ و ناموس- مړانه- غېرت مندی-

ننګیالے:(ننګ-یا-لے)اسم صفت- واحد- مذکر- ننګیال- غېرت مند- ناموس

ی (ځی-رل)، ې (مې-ره-وَل)، ئ (پیا-لی)، ے (تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

باندې مړ کېدونکے- غېرتی-

ننګېدل:(ننګ-ګې-دل)مصدر متعدی- ننګ کول- غېرت کول- ننګ خوړل-

ننګېدل:(ننګ-ګې-دل)مصدر متعدی- انګيرل- ګومان کول- احساسول- اټکلول- سوچل- جاجل- منل-

ننګے:(ننګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- د ابو يو قسم لوئ ځناور- نهنګ- ناکه- کپېر- (افغانستان)-

ننګے:(ننګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- رخسار- اننګے- جمع ننګی-

ننګے:(ننګ-ګے)اسم- واحد- مذکر- حامي- ملګرے- شاتړ- روستے- (پښتی)-

ننه ننه:(ننۀ-نه-ننۀ-نه)متعلق فعل- پټ پۀ پټه- پۀ پټه پټه- پۀ پرده پرده کښې- دننه دننه- اېننه اېننه-

ننېدل:(نه-نې-دل)مصدر لازم- (۱) څڅېدل- (۲)نيني کېدل-

ننی:(ننۀ-ن-نی)اسم- واحد- مؤنث- د نن ورځې متعلق- روانه ورځ-

ننے:(ننۀ-ن-نے)صفت- واحد- مذکر- د نن ورځې- امروزه- (۲)تازه- جديد- نوے-

ننواته:(ن-ن-وا-ته)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ننواتې-

ننواتې:(ن-ن-وا-تې)اسم- واحد- مؤنث- ننواته- د پښتنو د دستور مطابق د چا کورته د معافی غښتو د پاره تلنه او معافی غښتنه-

ننوب:(نه-نوب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ څڅون-

ننوتل:(ننۀ-ن-و-تل)مصدر متعدی- داخلېدل- دننه تلل- ننوتل-

ننوتلے:(ننۀ-ن-وه-تۀ-لے)صفت فاعل- واحد- مذکر- داخل شوے- وردننه شوے- ننوتے- ورننخ شوے-

ننوتن:(ننۀ-ن-و-تن)حاصل مصدر- وګورئ ننوتل-

ننوتنګ:(ننۀ-ن-و-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ ننوتل-

ننوتنه:(ننۀ-ن-و-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ننوتل-

ننوتونکے:(ننۀ-ن-و-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ننوتل-

ننوتۀ:(ننۀ-ن-و-تۀ)حاصل مصدر- وګورئ ننوتل-

ننوتے:(ننۀ-ن-وۀ-تے)صفت فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ننوتلے-

نن ورځ:(نن-ورځ)اسم مرکب- واحد- مؤنث- ننی ورځ-

ننول:(ن-نه-ول)مصدر متعدی- قطره قطره څڅول- څاڅکے څاڅکے څڅول- ټکے ټکے څڅول-

ننون:(نه-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ننول-

ننون:(نه-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ننول-

ننونکے:(نه-نه-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ننول-

ننونه:(نه-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ننول-

ننوبستل:(ننۀ-نه-وبس-تل)مصدر متعدی- دننه کول- ننه اېستل-

ننوبستن:(ننۀ-ن-وبس-تن)حاصل مصدر- وګورئ ننوبستل-

ننوبستنګ:(ننۀ-ن-وبس-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ ننوبستل-

ننوبستنه:(ننۀ-ن-وبس-تۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ننوبستل-

ننوبستونکے:(ننۀ-ن-وبس-تون-کے)فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ننوبستل-

ننوبستۀ:(ننۀ-ن-وبس-تۀ)حاصل مصدر- وګورئ ننوبستل-

ننه:(ننۀ-نه)حرف جار- دننه- مېنځ کښې- دننه- اېننه-

ننه باسل:(ننۀ-نه-با-سل)مصدر متعدی- دننه کول- اېننه کول- ننه اېستل- منډل- ورمنډل-

ننه باسن:(ننۀ-ن-با-سن)حاصل مصدر- وګورئ ننه باسل-

ننه باسنګ:(ننۀ-ن-با-سنګ)حاصل مصدر- وګورئ ننه باسل-

ننه باسنه:(ننۀ-ن-با-سۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ننه باسل-

ننه باسونکے:(ننۀ-ن-با-سون-کے)فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ننه باسل-

ننه باسۀ:(ننۀ-ن-با-سۀ)حاصل مصدر- وګورئ ننه باسل-

ننېدل:(ن-نې-دل)مصدر لازم- صاف کېدل- څاڅکے څڅېدل-

ننېدن:(ن-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ننېدل-

ننېدنګ:(ن-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ننېدل-

ننېدنه:(ن-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ننېدل-

ننېدونکے:(ن-نې-دون-کے)اسم فاعل- وګورئ ننېدل-

نو:(نو)اسم- واحد- مذکر- نوم- نامه- ناف- جمع نوګان-

نو:(نو)اسم- واحد- مذکر- (۱)نم- نمي- تر- لوند- (۲)پيپ-

نو:(نو)حرف جزا- حرف شرط- بيا-

نوا:(ن-وا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)آواز- صدا- (۲)کوک- راګ- نغمه- (۳)ساز و سامان- (۴)روزی- (۵)خوشحالی- (۲)د موسيقی پۀ دولسو مقامونو کښې د يو مقام نوم-

نواب:(ن-واب)اسم- واحد- مذکر- (۱)نائب- د يوې علاقې حاکم- (۲)يو لوئ جاګيردار- (۳)د عزت خطاب-

نوآباد:(نو-آ-باد)صفت- واحد- مذکر- نوے آباد کړے شوے-

نوآبادکار:(نو-آ-باد-کار)صفت- واحد- مذکر- يوه شاړه علاقه او پسمانده ملکونه آبادونکے- (۲)هغه حکومت چې د شاړو آبادولو پۀ بانه پۀ پسمانده ملکونو سياسی او اقتصادی تسلط قائموی-

نوابادی:(نو-آ-با-دی)اسم- واحد- مؤنث- هغه علاقه ، ملک يا جزيره چې يو لوئ ملک د ابادولو پۀ بانه قبضه کړے وی- جمع نوآباديات-

نوآبادياتی:(نو-آ-با-دی-يا-تی)صفت- واحد- مذکر- د نو ابادياتو سره متعلق- وګورئ نوآبادی-

نوآبادکاری:(نو-آ-باد-کا-ری)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يوه شاړه علاقه او پسمانده ملکونه آبادونه- (۲)د يو ملک د شاړو علاقو آبادولو پۀ بانه پۀ پسمانده ملکونو خپل سياسی او اقتصادی تسلط قائمونه-

نواح:(ن-واح)اسم- واحد- مذکر- مضافات- ګېر چاپېره علاقه-

نواحی:(ن-وا-حی)صفت- واحد- مؤنث- ګېر چاپېره علاقه-

نواخت:(ن-وا-خت)اسم صفت- واحد- مذکر- لائق- مناسب- جوګه- (م- فارسی)-

زبر "(ځ-بۀ-ره)، "زورکے "(شل)، "پېښ "(نو-کا-ره)، "زېر "(ک-تاب)، "جزم "(شکوڼ)، "ه "(ز-ړه)، "ۀ "(پو-بې-دۀ)

نواختن:(نَ-واخ-تَن)مصدر لازم- مراد ته رسېدل- برابرېدل- (م- فارسي)-

نوادر:(نَ-وا-دِر)صفت- واحد- مذکر- دَ نادر جمع- عجيبه څيزونه-

نوار:(نَ-وار)اسم- واحد- مذکر- هغه پلنه او غټه فيته چې پالنګونه ترې نه بنهولے شي- نوار-

نواره:(نَ-وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- سپينه غټۍ- سپينه کلي- شګوفه-

نواري:(نَ-وا-ري)اسم- جمع- مذکر- پوشاک- جامې- زړوکي- اَغستن- کالي- لباس-

نوار:(نَ-وار)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نوار-

نواړه:(نَ-وا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- وړه کشتي چې دَ سېل دَ پاره پکاروله شي-

نواړه:(نَ-وا-ړه)اسم- واحد- مذکر- غم- خفګان-

نواړے:(نوا-ړے)اسم- واحد- مذکر- وړهٔ ټکونه- ارت کنې- کچه ګينده- سرسري کنې- ارتې بخې- غاړې لماړې-

نواز:(نَ-واز)اسم صفت- واحد- مذکر- ساتونکے- عزت ورکونکے-

نواز:(نَ-واز)دَ لاحقې په توګه دَ صفت نه پس لګولے کيږي لکه غريب نواز-

نوازش:(نَ-وا-زِش)اسم- واحد- مذکر- مهرباني- عنايت- کرم- جمع نوازشات- (م- فارسي)-

نوازنده:(نَ-وا-زَن-ده)صفت- واحد- مذکر- سندرغاړے- ساز غږونکے- (م- فارسي)-

نواسير:(نه-وا-سير)اسم- جمع- مذکر- دَ ناسور جمع- هغه ناسور چې په مقعد کښې جوړ شي- يو قسم بواسير-

نواصب:(نَ-وا-صِب)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مسلمانانو يوه فرقه چې حضرت علي عليه السلام نهٔ مني- (۲)خارجي-

نوافذ:(نَ-وا-فِذ)اسم- جمع- مؤنث- دَ وجود سوري- دَ پوزې غوږونو او کونې سوري- (م- عربي)

نوال:(نه-وال)اسم- واحد- مذکر- بخښنه- بخشش- عطا- ورکړه- ورکړهٔ-

نواله:(نَ-وا-له)اسم- واحد- مؤنث- نمرې- نوړې- قپه- دَ خوراک هغه برخه چې په يو وار خُلې ته کړے شي- (م- فارسي- مذکر)-

نوآموز:(نو-آ-موز)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه څوک چې نوې نوې زده کړه يې کړې وي- نابلد- چې اوس يې زده کړه شروع کړې وي- (م- فارسي)-

نواميس:(نه-وا-ميس)اسم- جمع- مذکر- دَ ناموس جمع-

نوانواز:(نه-وا-نه-واز)صفت/فاعل- واحد- مذکر- آواز کونکے- نغمه ويونکے- (فارسي)-

نواهي:(نَ-وا-هي)اسم- جمع- مذکر- دَ نهي جمع- ممنوعات- ناجائز کار-

نوائب:(نَ-وا-ايب)اسم- جمع- مذکر- دَ نائبه جمع- تکليفونه- (م- عربي)-

نوباده:(نو-با-ده)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تازه او نوې رارسېدلې مېوه- (۲)هغه پچې (ټوکرۍ) چې باغوان يې دَ چونې کړو مېوو او ګلونو نه ډکه کړي او تحفةً يې بادشاهانو له وړي- (م- فارسي)-

نوبت:(نو-بَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)وار- نمبر- (۲)حالت- (۳)نغاره- نقاره- (م- فارسي)-

نوبتي:(نو-ب-تي)صفت- واحد- مذکر- چوکيدار- نقاره وهونکے-

نوبهار:(نو-به-هار)اسم- واحد- مذکر- نوے بهار- تازه پسرلے- دَ بهار شروع- دَ پسرلي نوے راتګ-

نوټري پبلک:(نوټ-ري-پب-لک)اسم- واحد- مذکر- دَ حکومت دَ طرف نه مقرر کړے شوے سړے چې دستاويزاتو باندې تصديق کوي- (NOTARY PUBLIC)-

نوچۍ:(نو-چۍ)اسم- واحد- مؤنث- بازاري جينۍ چې چلولے شي- رنډۍ- کنجرۍ- ډمه- چلېدونکې جينۍ-

نوغ:(نوغ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نوسے-

نوح:(نوح)اسم- واحد- مذکر- دَ يوهٔ مشهور پېغمبر نامه دَ چا په ښېرو چې په دنيا کښې دَ اَبو طوفان راغلے وو-

نوحه:(نو-حه)اسم- واحد- مؤنث- ژړا- فرياد- ماتم کونه- په مړي باندې ژړل- (م- عربي)-

نوحه خوان:(نو-حه-خوان)اسم صفت- هغه کس چې دَ مړي په موقع دَ غم شعرونه وائي يا دَ مړي خوبۍ په ژړا کښې بيانوي- نوحه ګر- (م- فارسي)-

نوحه ګر:(نو-حه-ګر)صفت- واحد- مذکر- نوحه خوان-

نوخط:(نو-خط)اسم صفت- واحد- مذکر- هغه ځلمے چې په مخ يې نوے خط راغلے وي- کچه ځلمے- نوے ځلمے-

نوخړنده:(نوخ-ړن-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ اولجه-

نوخول:(نو-خه-وَل)مصدر متعدي- ډېر مشتاق جوړول- ډېر خواهشمند جوړول-

نوخېدل:(نو-خې-دَل)مصدر لازم- زيات محتاج کېدل- ډېر غريب کېدل-

نوخېدن:(نو-خې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ نوخېدل-

نوخېدنګ:(نو-خې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ نوخېدل-

نوخېدنه:(نو-خې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نوخېدل-

نوخېدونکے:(نو-خې-دون-کے)اسم فاعل- جمع نوخېدونکي- مؤنث نوخېدونکې- وګورئ نوخېدل-

نوخېدهٔ:(نو-خې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ نوخېدل-

نور:(نور)متعلق فعل- زيات- ددې نه علاوه-

نُور:(نُور)اسم- واحد- مذکر- (۱)رڼا- چمک- (۲)رونق- (۳)کلام پاک- (م- عربي)-

نور:(نُور)اسم- واحد- مذکر- نمر- لمر- آفتاب- جمع نورونه-

نوراني:(نو-را-ني)صفت- واحد- مذکر- چمکدار- ورون- منور- پرقېدونکے-

"ئ" (څې-رل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لي)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

دَ نور متعلق-

نورپرېواتهٔ:(نوَر-پرېِ-وا-تهٔ)اسم- واحد- مذکر- قبله- مغرب-

نورپرېوتیز:(نوَر-پرېِ-وَ-تیز)اسم- واحد- مذکر- قبله- مغرب-

نورخاتهٔ:(نوَر-خا-تهٔ)اسم- واحد- مذکر- نمرخاتهٔ- مشرق- شغرب- نمرختیز- نورختیز-

نورختیز:(نوَر-خه-تیز)اسم- واحد- مذکر- وګورئ نورخاتهٔ-

نورس:(نو-رَس)صفت- واحد- مذکر- تازه- نوے ټوکیدلے-

نورک:(نو-رَک)اسم- واحد- مذکر- نوری- لباس- کپړې- جامې- نمری-

نورلس:(نوَر-لس)اسمِ عدد- دَ اَتلس او شل تر مینځه عدد- (۱۹)- یو کم شل- نولس-

نورلسم:(نوَر-له-سم)اسم عدد- دَ نورلس صفتی عددی مذکر هندسه-

نورلسمه:(نور-له-سهٔ-مه)اسمِ عدد- دَ نورلس صفتی عدد مؤنث هندسه-

نوروز:(نو-روز)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ کال وړومبی ورځ- (۲)دَ ایرانیانو قومی جشن-

نوروزی ګل:(نو-رو-زي-ګل)اسم- واحد- مذکر- دَ یو قسم ګل نامه-

نوروول:(نو-ره-وَل)مصدرِ متعدی- تبدیل کول- بدلول- اړول-

نوروون:(نو-ره-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ نوروول-

نوروونکے:(نو-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ نوروول-

نورونه:(نو-ره-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نوروول-

نوری:(نوهٔ-ری)اسم- جمع- مذکر- جامې- پوشاک- لباس- زړوکی- کپړې- نمری- کالی-

نورېدل:(نو-رېِ-دَل)مصدرِ لازم- بدلېدل- تبدیلېدل- اوړېدل-

نورېدن:(نو-رېِ-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ نورېدل-

نورېدنګ:(نو-رېِ-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ نورېدل-

نورېدنه:(نو-رېِ-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نورېدل-

نورېدونکے:(نو-رېِ-دوَن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع نورېدونکی- مؤنث نورېدونکې- وګورئ نورېدل-

نورېدهٔ:(نو-رېِ-دهٔ)حاصلِ مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ نورېدل-

نوړز:(نو-ړز)اسم- واحد- مذکر- بټېر- مېز-

نوړل:(نو-ړل)مصدرِ لازم- نړېدل- ړنګېدل- غرځېدل- تباه کېدل- ورانېدل-

نوړن:(نو-ړن)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړل-

نوړنګ:(نو-ړنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړل-

نوړنه:(نو-ړهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړل-

نوړول:(نو-ړهٔ-وَل)مصدرِ متعدی- دَ بېخه وېستل- غرځول- نړول- ړنګول-

نوړون:(نو-ړهٔ-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړول-

نوړونکے:(نو-ړهٔ-وون-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- وګورئ نوړول-

نوړونګ:(نو-ړهٔ-وَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړول-

نوړونه:(نو-ړهٔ-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړول-

نوړېدل:(نو-ړېِ-دَل)مصدرِ لازم- نړېدل- غُرځېدل- پرېوتل-

نوړېدن:(نو-ړېِ-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړېدل-

نوړېدنګ:(نو-ړېِ-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړېدل-

نوړېدنه:(نو-ړېِ-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړېدل-

نوړېدونکے:(نو-ړېِ-دوَن-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع نوړېدونکی- مؤنث نوړېدونکې- وګورئ نوړېدل-

نوړی:(نو-ړی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- لقمه- نواله- ګپه- نواړی-

نوز:(نوز)اسم- واحد- مذکر- راز-

نوزی:(نو-زی)اسم- واحد- مؤنث- هغه کانے چې چاړهٔ چاقو پرې تېرهٔ کولے شی- چړکانے- بیلو-

نوزے:(نو-زے)اسم- واحد- مذکر- نُوسے- مرڅینګ-

نوزے:(نو-زے)صفت- واحد- مذکر- نوے- دا لفظ بطور تاکید استعمالیږی لکه نوے نوزے-

نوژن:(نو-ژن)اسمِ صفت- واحد/جمع- مذکر- نمژن- نمجن- چې نم لری- لوند- نم یا نژ لرونکے- لوندوالے لرونکے- مؤنث نوژنه-

نوړ:(نوړ)اسم صفت- مذکر- سوچه- خالص- ناړهٔ- نره- څره- یوب- چې هیڅ قسم ګډون پکښې نهٔ وی شوے-

نوړدل:(نوړ-دَل)مصدرِ لازم- ټوخل- ټوخېدل- اینګے اچول- انتوشے کول-

نوړدن:(نوړ-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړدل-

نوړدنګ:(نوړ-دَنګ)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړدل-

نوړدنه:(نوړ-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړدل-

نوړدونکے:(نوړ-دوَن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع نوړدونکی- مؤنث نوړدونکې- وګورئ نوړدل-

نوړول:(نو-ړه-وَل)مصدرِ متعدی- خالصول- صفا کول-

نوړون:(نو-ړه-وَن)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړول-

نوړونکے:(نو-ړه-وون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نوړونکی- مؤنث نوړونکې- وګورئ نوړول-

نوړونه:(نو-ړه-وهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړول-

نوړېدل:(نو-ړېِ-دَل)مصدرِ لازم- ټوخېدل- انړے کول- اینګے کول-

نوړېدن:(نو-ړېِ-دَن)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړېدل-

نوړېدنه:(نو-ړېِ-دهٔ-نه)حاصلِ مصدر- وګورئ نوړېدل-

نوړېدونکے:(نو-ړېِ-دوَن-کے)اسمِ فاعل- واحد- مذکر- جمع نوړېدونکی- مؤنث نوړېدونکې- وګورئ نوړېدل-

نوړے:(نو-ړے)اسم- واحد- مذکر- نوغے- اصل- جمع نوړی-

نوړے:(نو-ړے)اسم- واحد- مذکر- انړے- انتروشے- اینړے- اینګے-

نوس:(نوس)اسم- واحد- مذکر- نفس- انسانی خواهش- هوس-

نوستل:(نوس-تَل)مصدرِ متعدی- تتر بتر کول- ګډوډ کول- نُستل-

"زبر"(خ-بهٔ-ره)، "زورکے"(شل)، "پېش"(نو-کا-ره)، "زېر"(ک-تاب)، "جزم"(شکوني)، "ه"(ز-ړه)، "هٔ"(ړو-بې-دهٔ)

دانه وانه کول- تس نس کول-

نوسخان:(نوس-خان)اسم- واحد- مذکر- نقصان- زیان- تاوان- کچه حمل ضائع کېدنه-

نوسک:(نو-سک)اسم- واحد- مذکر- دَ نوس اسم تصغیر- نفس-

نوسه:(نو-سه)اسم- واحد- مؤنث- مرطوبه زمکه- زیمناکه زمکه-

نوسه:(نو-سه)اسم- واحد- مؤنث- ذائقه- خوند-

نوسي:(نو-سي)صفت- واحد- مذکر- (۱)نفسي- دَ خواهشاتو پابند- (۲)نافرمان- سرکش-

نوسي کړوسي:(نوه-سي-کړ-وه-سي)اسم مرکب- جمع- مذکر- نمسا نمسي- نمسي کړوسي- اولاد- آل اولاد-

نوسے:(نوه-سے)اسم- واحد- مذکر- نوسے- نمسے-

نوسے:(نو-سے)اسم- واحد- مذکر- هغه آله چې وېښتهٔ پرې وکاږي-

نوش:(نوش)اسم- واحد- مذکر- (۱)څښینه- (۲)خوشګوار څیز- شات- شهد- (۳)تریاق- آب حیات- (۴)لاحقه چې دَ بعضې نامو پهٔ آخر کښې راشي او دَ فعل معنې پېدا کوي لکه باده نوش-

نوشادر:(نو-شا-در)اسم- واحد- مذکر- یو مرکب دے چې دَ المونیم او کلورین نه جوړیږي-

نوشت:(نوشت)اسم- واحد- مذکر- تحریري- لکهائی- کتابت- ونیل او لیکل-

نوشته:(نوش-ته)صفت- واحد- مذکر- (۱)لیکلے شوے- (۲)تحریر کړے شوے- (۳)دَ تقدیر لیک-

نوش دارو:(نوش-دا-رُو)اسم- واحد/جمع- مذکر- (۱)تاریاق- تریاق- زهرموره- (۲)شراب-

نوشل:(نو-شل)مصدر متعدي- څښل- نوش کول- (م- فارسي نوش)-

نوشین:(نو-شین)صفت- واحد- مذکر- شیرین- خوږ- خوش ذائقه- (م- فارسي)-

نوښادر:(نو-ښا-در)اسم- جمع- وګورئ نوشادر- (افغانستان دارمینا)-

نوع:(نوع)اسم- واحد- مذکر- نوغے- اصل- جرړه- (م- عربي)-

نوعمر:(نو-عُ-مر)اسم صفت- واحد- مذکر- کچه ځلمے- ملک- هغه ملک چې نوے ځلمے شوے وي- ناتجربه کار- (م- فارسي)-

نوعمري:(نو-عُم-ري)اسم- واحد- مؤنث- کچه ځلمیتوب- هلکوانه- ملکتوب- کچه خواني-

نوغ:(نوغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)بېخ- بنیاد- اصل- جرړه- تخم- (۲)علامت- چاپ- خاپ- ټاک- ټاپ- جمع نوغي-

نوک:(نوک)اسم- واحد- مذکر- دَ ښکر دَ ذاته یو نرے پترے چې دَ بنیادمو او ځناورو دَ پښو او لاسونو دَ ګوتو پهٔ سرونو راخیژي- جمع نوکونه-

ناکاره:(نو-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- سکونداره- دَ نوک زخم- جمع نوکارې-

نوکارول:(نو-کا-رهٔ-ول)مصدر متعدي- نوکارې کول- په چا دَ نوک په ذریعه زخم راوستل-

نوک تراش:(نوک-تراش)اسم- واحد- مذکر- دَ نوک پرېکولو آله-

نوکر:(نو-کر)اسم- واحد- مذکر- ملازم- تنخوادار- خدمتګار- خادم- جمع نوکران-

نوکري:(نو-که-ري)اسم- واحد- مؤنث- ملازمت- چاکري- خدمتګاري- خادمي- جمع نوکرۍ-

نوکرے:(نوک-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه ځناور چې نوکونه ئې سپین وي-

نوک نیول:(نوک-نې-وَل)مصدر متعدي- څنډول- دمه کول- ډیل ورکول- تاخیر کول- خبره نیول- پهٔ خبرو کښې سا اخستل یا دمه کول-

نوکونه جنګول:(نو-کو-نه-جنګ-ګه-وَل)ترکیبي مصدر- دَ چا پهٔ جنګ خوشحالیدل- دوه کسه جنګول-

نوک وزري:(نوک-وَو-ري)اسم مرکب- لازم ملزوم- ډېر نژدې- ډېر خواږهٔ-

نوکه:(نو-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ځناورو دَ سپینې هغه حصه چې پهٔ زمکه لګېدلې وي- (۲)پنجه-

نوکه:(نو-که)اسم- واحد- مؤنث- دَ چرسو یوه ذره حصه- پهٔ نوک باندې دَ چرسو یوه ذره بیلونه- دَ چرسو ټوکړه-

نوکي سترګې:(نو-کي-ستر-ګې)صفت مرکب- جمع- مؤنث- وړې سترګې- چوچې سترګې-

نوکے:(نو-کے)اسم- واحد- مذکر- هغه سپے چې پوره شل نوکونه ئې وي-

نوکے:(نو-کے)اسم صفت- ډېر وړوکے- ډېر لږ- جمع نوکي-

نوکے نوکے:(نو-کے-نو-کے)صفت مرکب- ذره ذره- ټکړې ټکړې-

نوګا:(نو-ګا)اسم- واحد- مؤنث- پیړی- اصل- پشت- رګ- نوغه-

نول:(نُول)اسم- واحد- مذکر- غم- فکر- پریشاني- خفګان- غریبي- اندېښنه- سودا-

نول:(نول)اسم- واحد- مذکر- طور طریقه- دستور- روش- رواج-

نولت:(نو-لت)اسم- واحد- مذکر- خنزیر-

نول خول:(نول-خول)اسم مرکب- واحد- مذکر- پهٔ خوارو زارو- پهٔ ډېر کړاؤ-

نولژن:(نُول-ژن)صفت- واحد- مذکر- غمژن- دلګیر- ملال- خفه-

نولژنول:(نُول-ژهٔ-نه-وَل)مصدر- کړول- غمګین کول- پرېشانه کول-

نولژنېدل:(نُول-ژهٔ-نې-دَل)مصدر- کړېدل- غمګینېدل- پرېشانه کېدل-

نولس:(نُو-لس)اسم عدد- نولس- (۱۹)- یو کم شل-

نولس شل:(نُو-لس-شل)اسم مرکب- واحد- مذکر- لږ فرق- معمولي توپیر- پوټې شان فرق-

نولسم:(نُو-ل-سم)صفت- واحد- مذکر- دَ نولس صفتي عندسه- مؤنث نولسمه-

نولسمه:(نو-له-سهٔ-مه)اسم صفت- واحد- مؤنث- وګورئ نولسم-

نولکے:(نو-له-کے)صفت- واحد- مذکر- شوخ سترګے- ګستاخ- بې لحاظه-

نولل:(نو-لل)مصدر متعدي- خوارهٔ وارهٔ ویشتل- نوستل- نُستل-

نولول:(نُو-له-وَل)مصدر متعدي- غمګین کول- تکلیف رسول- پرېشان کول-

ئ (ځی-رل)، ې (هې-ره-وَل)، ی (پیا-لی)، ے (تن-دیے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

نولېدل:(نو-لې-دَل)مصدر متعدي- کړېدل- غمگين کېدل- فکرمند کېدل- اندېښنه پېدا کېدل- وسوسه پېدا کېدل- زړهٔ خوړل-

نولېدن:(نو-لې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ نولېدل-

نولېدنګ:(نو-لې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ نولېدل-

نولېدنه:(نو-لې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ نولېدل-

نولېدهٔ:(نو-لې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نولېدل-

نولے:(نو-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ (CIVET) دَ خاندان يو قسم خناور چې دَ مږو نه لږ غټ وی او ماران او مږې وژنی- زيات تر پهٔ برصغير پاک و هند کښې پېدا کيږی- جمع نوليان يا نولی-

نوم:(نوم)اسم- واحد- مذکر- (۱)نام- نامه- اسم- (۲)مشهورتيا- جمع نومونه-

نوم:(نوم)اسم- واحد- مذکر- ناف- دَ وجود دَ يو اندام نوم- جمع نومونه-

نوماندے:(نو-مان-دے)صفت- واحد- مذکر- نامزد- مشهور- نامور-

نوم بدی:(نوم-به-دی)اسم مرکب- واحد- مؤنث- بدنامی- نوم بدېدنه-

نومبر:(نهٔ-وم-بر)اسم- واحد- مذکر- دَ عيسوی کال يولسمه مياشت-

نومد:(نومد)صفت- واحد- مذکر- لوند- تر- لوند- خوشت-

نومدار:(نوم-دار)اسم صفت- واحد- مذکر- نامدار- نومورے- مشهور- نامتو- نامور-

نومړ:(نو-مړ)صفت- واحد- مذکر- نامور- نامبرو- نامتو- نامزد- نومړ- نومورے-

نومړل:(نوم-ړل)مصدر- نومونه يادول- نوم اخستل-

نومړے:(نو-مهٔ-ړے)صفت- واحد- مذکر- مشهور- موسوم- (۲)مقرر- نامزد- نامتو- نامورے-

نومړے:(نوم-ړے)اسم- واحد- مذکر- وروميے- زوړ- مخکښے- وړاندينے- اولنے-

نومسلم:(نو-مس-لم)صفت- واحد- مذکر- نوے مسلمان شوے- هغه سړے چې نوے نوے ئې اسلام قبول کړے وی-

نومل:(نو-مل)مصدر متعدی- نامزد کېدل- نامه گټل- نامه ساتل-

نوم لاړے:(نوم-لا-ړے)صفت- واحد- مذکر- مشهور- چې دَ چا نوم تر لرې لرې رسېدلے وی- نامتو-

نومور:(نو-مه-ور)صفت- واحد- مذکر- نومورے- مشهور- نامتو-

نوم ورکے:(نوم-ورهٔ-کے)صفت- واحد- مذکر- گمنام- غېر معروف-

نومورے:(نو-مه-وهٔ-ړے)اسم- واحد/جمع- مذکر- نومړ- مشهور- نامتو- نوميات- نوم يال- نوم يالے-

نوميات:(نوم-يات)صفت- واحد- مذکر- نامتو- نامور- وګورئ نومورے-

نوميالے:(نوم-يا-لے)صفت- واحد- مذکر- نامور- نامدار- جمع نوميالی- وګورئ نومورے-

نومېد:(نو-مېد)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ نااُميد-

نومېدی:(نو-مې-دی)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نااُميدی-

نومېدل:(نو-مې-دَل)مصدر لازم- ټاکل- ټاکلے کېدل- نامزد کېدل- (افغانستان)-

نومېدلے:(نو-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- جمع نومېدلی- مؤنث نومېدلې- وګورئ نومېدل-

نومېدن:(نو-مې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ نومېدل-

نومېدنګ:(نو-مې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ نومېدل-

نومېدنه:(نو-مې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ نومېدل-

نومېدونکے:(نو-مې-دون-کے)فاعل- جمع نومېدونکی- مؤنث نومېدونکې- وګورئ نومېدل-

نومېدهٔ:(نو-مې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ نومېدل-

نون:(نون)حرف- دَ پښتو دَ ا، ب دَ پټی شپږدېرشم حرف- "ن" تلفظ-

نون:(نون)اسم- واحد- مذکر- دَ تصوف پهٔ اصطلاح کښې عالم ناسوت ته وائی (يعنی عالم اجسام، عالم مادی او عالم سفلی)-

نون:(نون)صفت- واحد/جمع- مذکر- نمناک- تر- رطوبت لرونکے- لوند- زېمناک-

نونخه:(نو-نه-خه)اسم- واحد- مؤنث- مريضی- رنځوالی- کرکه- نقاهت- کمزوری-

نوند:(نوند)اسم صفت- واحد- مذکر- لوند-

نوندول:(نون-دهٔ-ول)مصدر متعدی- لمدول- لوندول-

نوندون:(نون-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ نوندول-

نوندونکے:(نون-ده-وون-کے)اسم فاعل- جمع نوندونکی- مؤنث نوندونکې- وګورئ نوندول-

نوندونګ:(نون-ده-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نوندول-

نوندونه:(نون-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نوندول-

نوندېدل:(نون-دې-دَل)مصدر لازم- لوندېدل- لمدېدل-

نوندېدن:(نون-دې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ نوندېدل-

نوندېدنګ:(نون-دې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ نوندېدل-

نوندېدنه:(نون-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نوندېدل-

نوندېدونکے:(نون-دې-دون-کے)فاعل- جمع نوندېدونکی- مؤنث نوندېدونکې- وګورئ نوندېدل-

نوندېدهٔ:(نون-دې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ نوندېدل-

نونس:(نو-نس)اسم- واحد- مذکر- نولس- نورلس-

نونسم:(نو-ن-سم)عدد صفت- مذکر- نورلسم- مؤنث نونسمه-

نونکی:(نو-ن-کی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وړې وړوی دانې- ننکی-

نونه:(نو-نه)اسم- واحد- مؤنث- ښځکی- ښنبخه- لوند- نونه-

نوني:(نو-نی)اسم- واحد- مؤنث- څوخې- د ماشوم د ورو بولو اندام-

نوني:(نو-نې)اسم- جمع- مؤنث- نينې- پخکوړ شوي دانې- زريتې شوې دانې-

نووارد:(نو-وا-رد)صفت- واحد- مذکر- مسافر- اجنبي- نوے سړے-

نوماتوب:(نو-ما-توب)اسم- واحد- مذکر- لُوږه- تنده- اشتها- د خوراک خواهش-

نوی:(نه-زی)اسم عدد- لسم کم سل- ۹۰-

نوید:(ن-وید)اسم- واحد- مذکر- زيرے- د خوشحالۍ خبر- (م- فارسی)-

نويسم:(نوی-سم)اسم صفت- واحد- مذکر- ښکاره- بې ستره- څرګند- مؤنث نويسمه-

نويسنده:(ن-وی-سن-ده)صفت- واحد- مذکر- ليکونکے- کاتب- خط ليکونکے- (م- فارسی)-

نويلی:(ن-وی-لی)اسم- واحد- مؤنث- هغه ښځه چې نورو ښځو ته د وادهٔ بلنه ورکوی-

نويلے:(ن-وی-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د وادهٔ دعوت- دعوت عروسی- (۲)بلندره- بلنه- بلنې-

نوبغ:(نه-وبغ)اسم صفت- بې شرمه- مؤنث نوبغه- جمع نوبغې-

نوے:(نه-وے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)د زوړ ضد- (۲)ناتجربه کار- جمع نوی-

نوے نزے:(نه-وے-نه-زے)صفت مرکب- واحد- جمع نوی نزی- بالکل نوے- وګورئ نوے نوزے-

نوے نوزے:(نه-زے-نو-زے)صفت مرکب- بالکل نوے- بېخی نوے- نوے نزے- پرڅېدونکے-

نهٔ:(نهٔ)حرف نفی- پهٔ مثبت فقره کښې د اسم مفعول نه پس پهٔ لګېدو باندې د فقرې معنٰی نفی شی-

نه:(نه)علامت حاصل مصدر- لکه تېرېدنه- پام لرنه-

نه:(نه)حرف جار- لکه لهٔ دې ځائ نه تر دې ځائ پورې-

نه:(نه)اسم- خفګان- خپګان- نول-

نه:(نه)د ټپې پهٔ آخری مصرعه کښې د ززن د قائم ساتلو د پاره لکولے کيږی-

نهٔ څهٔ:(نهٔ-څهٔ)متعلق فعل- معمولی- پوټسکے- لږ څهٔ- تشه خبره-

نههٔ:(نهٔ-ههٔ)اسم عدد- د اتو او د لسو پهٔ مينځ کښې عدد-

نههٔ اتيا:(نهٔ-ههٔ-أت-يا)اسم عدد- نههٔ اتيا (۸۹)- يو کم نوی- يو کم څلورنيمې شلې-

نهاد:(ن-هاد)اسم- واحد- مذکر- خټه- سرشت- خورزون- طبيعت- عموماً پهٔ مرکب لفظونو کښې راځی لکه پيش نهاد، نام نهاد وغيره-

نهاده:(نې-ها-ده)اسم- ايښے- پروت- پراته-

نهار:(ن-هار)صفت- واحد- مذکر- نهر- وږے- اوږے- (م- فارسی)-

نهار:(نه-هار)اسم- واحد- مذکر- ورځ- رڼا- (م- عربی)-

نهار نهور:(ن-هار-ن-هور)صفت مرکب- واحد- مذکر- بالکل اوږے- وږے تږے- نهر نهور-

نهارې:(نا-رې)اسم- جمع- مؤنث- نارې- لوړې- تندې- نهرې-

نهال:(ن-هال)صفت- واحد- مذکر- (۱)تازه لګېدلے بوټے- نال- (۲)آباد- خوشحال- خوش- ښتمن-

نهالول:(ن-ها-له-ول)مصدر متعدی- (۱)نالول- بوټے لګول- (۲)آبادول- خوشحالول- ښتمن کول-

نهالی:(ن-ها-لی)اسم- واحد- مؤنث- نيالی- توشک- تورشک- برستن- تلتک- نهالی-

نهالېدل:(ن-ها-لې-دل)مصدر لازم- (۱)ټوکېدل- نالېدل- کېدل- (۲)ابادېدل- ودانېدل- خوشحالېدل-

نهالېدن:(ن-ها-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نهالېدل-

نهالېدنګ:(ن-ها-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نهالېدل-

نهالېدنه:(ن-ها-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نهالېدل-

نهالېدونکے:(ن-ها-لې-دون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نهالېدونکی- مؤنث نهالېدونکې- وګورئ نهالېدل-

نهالی:(نه-ها-لی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- وګورئ نهالی-

نهام:(ن-هام)صفت- واحد/جمع- مذکر- پټ- پټ پهٔ پټه-

نهامول:(ن-ها-م-ول)مصدر متعدی- پټول- چپ کول- پټول-

نهامېدل:(ن-ها-مې-دل)مصدر لازم- چپ کېدل- پټېدل-

نهامېدن:(ن-ها-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نهامېدل-

نهامېدنګ:(ن-ها-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نهامېدل-

نهامېدنه:(ن-ها-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نهامېدل-

نهامېدونکے:(ن-ها-مې-دون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نهامېدونکی- مؤنث نهامېدونکې- وګورئ نهامېدل-

نهامېدهٔ:(ن-ها-مې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ نهامېدل-

نهان:(ن-هان)صفت- واحد/جمع- مذکر- نهام- پټ-

نهانی:(ن-ها-نی)اسم- واحد- مؤنث- پټ پهٔ پټه- پټوالے-

نهايت:(ن-ها-يت)اسم- واحد- مذکر- حد- انجام- اخر- انتها- (م- عربی)-

نهايت:(ن-ها-يت)اسم- واحد- مذکر- شدت سره- ډېر زيات- بې صبری سره-

نهايتی:(ن-ها-يه-تی)اسم- واحد- مذکر- لهٔ حده وتے- ډېر زيات- د وس نه زيات-

نهر:(ن-هر)صفت- واحد/جمع- مذکر- اوږے- وږے- مؤنث نهره- جمع مؤنث نهرې-

نهر نهور:(نه-هر-نهٔ-هور)صفتی مرکب- واحد/جمع- مذکر- وږے تږے-

نهر:(ن-هر)اسم- واحد- مذکر- نېر- د درياب شاخ- جمع نهرونه-

ئ (ځي-رل)، ې (مې-ره-ول)، ی (پيا-لی)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

نهلول:(نه-له-وَل)مصدر متعدی- نالول- لګول- بوټے کرل-

نهنګ:(نهٔ-هَنګ)اسم- واحد- مذکر- کرپال- ننګے- يو غټ سمندری خناور- جمع نهنګان-

نهی:(نهٔ-هی)اسم- واحد/جمع- مؤنث- هغه کارونه چې مخالفت ئې شوے وی-

نهيب:(نهٔ-هيب)اسم- واحد- مذکر- (۱)ويره- هيبت- (۲)لوټ مار- ظلم-

نهيل:(ن-هيل)صفت- واحد- مذکر- مايوس- نااُميد- محروم-

نهيل:(ن-هيل)اسم- واحد- مذکر- نم لرونکے کثيفه هوا-

نهيلے:(ن-هی-لے)صفت- واحد- مذکر- محروم- نااُميد-

نهې:(نهٔ-هې)اسم- واحد- مؤنث- دَ نهې ورځ- دَ چارشنبې نه مخکښې او دَ ګل نه وروستو ورځ-

نے:(نے)لاحقه- چې نامې يا صفت نه وروستو راشي نو دَ نسبت معنٰی ورکوی لکه پرونے، اوسنے-

نيا:(نيا)اسم- واحد- مؤنث- نيا- نانا- ادې- جمع نياګانې-

نيا:(نيا)صفت- واحد- مذکر- دننه- دننه کېدنه- دننه کونه-

نيابت:(ن-يا-بت)اسم- واحد- مذکر- نائبتوب- نائب کېدنه- نائبی- دَ نائب جوړېدو حالت- قائم مقامتوب- ام- عربی مؤنث)-

نياتی:(نيا-تي)اسم صفت- واحد- مذکر- ښهٔ نيت لرونکے- دوست- نيتي-

نياره:(نيا-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ زرګر دَ دوکان خځله- جمع نياوې-

نياره:(نيا-ره)اسم- واحد- مؤنث- لوږه- نهره- دَ خوراک نهٔ کولو حالت-

نياره ګر:(نيا-ره-ګر)اسم صفت- واحد- مذکر- دَ زرو راويستو پهٔ غرض دَ زرګر دَ دوکان خځله پاکونکے- نياره صفا کونکے-

نياز:(نياز)اسم- واحد- مذکر- عذر- عاجزی- غريبی- حاجت- ناز- فخر-

نياز:(نياز)اسم- واحد- مذکر- نذر- منت- منښته-

نيازبين:(نياز-بين)صفت- واحد- مذکر- پهٔ ناز پاللے- پهٔ ناز باندې عادت شوے- (۲)نازک طبع- نازک مزاج-

نيازبين توب:(نياز-بين-توب)اسم مرکب- واحد- مذکر- (۱)پهٔ ناز پالنه- (۲)نازک طبعي- نازک مزاجی-

نيازمن:(نياز-مَن)صفت- واحد- مذکر- نيازمند- خواهش مند- خاکسار طبع- (۲)هغه سړے چې دَ چا نازونه زغمي- نيازبين- محبوب-

نيازمند:(نياز-مند)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ نيازمن-

نيازمندی:(نياز-من-دی)اسم مرکب- واحد- مؤنث- ضرورت مندی- حاجتمندی- خاکساری- تابعداری-

نيازول:(نيا-زهٔ-ول)مصدر متعدي- معزز جوړول- عزت مند جوړول-

نيازولے:(نيا-زهٔ-وهٔ-لے)اسم مفعول/صفت- واحد- مذکر- محترم- شيرين- خوږ- (۲)محبوب- نيازبين-

نيازوړے:(نيا-زهٔ-وهٔ-ړے)صفت- واحد- مذکر- وګورئ نيازولے-

نيازون:(نيا-زهٔ-ون)حاصل مصدر- وګورئ نيازول-

نيازونکے:(نيا-زهٔ-وون-کے)اسم فاعل- جمع نيازونکی- مؤنث نيازونکې- وګورئ نيازول-

نيازونګ:(نيا-زهٔ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نيازول-

نيازونه:(نيا-زهٔ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نيازول-

نيازوهٔ:(نيا-ز-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نيازول-

نيازی:(نيا-زی)صفت- واحد- مذکر- (۱)غرض کوُنکے- خواست کوُنکے- (۲)عاشق- دوست- محبوب-

نيازېدل:(نيا-زې-دَل)مصدر لازم- قدرمن کېدل- دَ چا پهٔ مرسته پاړه کېدل-

نيازېدن:(نيا-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نيازېدل-

نيازېدنګ:(نيا-زې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نيازېدل-

نيازېدنه:(نيا-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نيازېدل-

نيازېدونکے:(نيا-زې-دون-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ نيازېدل-

نيازېدهٔ:(نيا-زې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نيازېدل-

نياګی:(نيا-ګی)اسم- واحد- مؤنث- نيا- ادې- دَ "نيا" نه اسم تصغير-

نيال:(نيال)اسم- واحد- مذکر- نال- نهال-

نيالګی:(نيال-ګی)اسم- واحد- مؤنث- هغه ونه چې پوخ عمر ته نهٔ وی رسېدلې-

نيالی:(نيا-لي)اسم- واحد/جمع- مؤنث- نالی- توشک- تورشک- بړستن-

نيام:(نيام)اسم- واحد- مذکر- دَ تورې تېکے- جمع نيامونه-

نيامت:(نيا-مت)اسم- واحد- مذکر- دَ نعمت مغفن

نيامده:(نيام-ده)صفت- مذکر- اچانک- ناګهانه- ناڅاپه-

نيانی:(نيا-ني)اسم صفت- واحد- مذکر- تاوانی- نقصانی- موذی- مُضمر-

نياو:(نياو)اسم- واحد- مذکر- فېصله- عدل- انصاف- نياوېړے- حق رسونه- دَ مظلوم مرسته- دادرسي-

نياوځای:(نياو-ځای)اسم- واحد- مذکر- دَ انصاف ځای- عدالت- دَ فېصلې ځای- (افغانستان)-

نياوه:(نيا-وه)اسم- واحد- مؤنث- تاوان- جُرمانه-

نياوېړی:(نيا-وی-ړي)اسم- واحد- وګورئ نياو-

نياوېړے:(نيا-وې-ړے)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ نياوے-

نياوے:(نيا-وے)اسم صفت- واحد- مذکر- منصف- عادل- انصاف کونکے- فيصله کونکے- حق رسونکے- دادرس- غاورسے- نياوېړے- دَ مظلوم مرسته کونکے- (افغانستان)-

نيائی:(نيا-ئی)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مور ورور- ماما- (۲)دَ ترور خاوند- دَ مور اخښے- جمع نيايان/نيائی ګان-

نيبره:(نيب-ره)اسم- واحد- مذکر- دَ يو ونې نامه چې پاڼې ئې ډېرې ترخې وی-

نيبو:(نې-بو)اسم- واحد- مذکر- يو تُرشه مېوه او دَ هغې بوټے- لېمبو- لېمو- نيمو- نباتاتی نوم (CITRUS MEDICA)-

نيت:(نيَت)اسم- واحد- مذکر- اراده- مرضی- اصلی مقصد-

نیتي:(نیه-تي)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)اخلاص من- اخلاصي- (۲)مقتدي- امام پسې نیت تړونکے- جمع نیتیان-

نیچ:(نیچ)اسم صفت- مذکر- کم ذات- کمینه- بداصل- نالائق- اُدنٰی-

نیچه:(نی-چه)اسم- واحد- مؤنث- نلی- نچه- دَ سا اخستو نلی-

نیُر:(نیَ-یر)اسم- واحد- مذکر- نمر- افتاب- نور- (م- عربي)-

نیره:(نی-ره)اسم- واحد- مؤنث- دَ پیزار گنډلو ستن- رینه- جمع نیرې-

نیز:(نیز)متعلق فعل/حرف عطف- دوېم- نور- دا لاندې ورکړے شوی-

نیز:(نیزْ)اسم- واحد- مذکر- سېلاب- لوئ سېلاب- توئے-

نیزدوکت:(نیز-دو-کت)اسم- واحد- مذکر- قُربت- نژدېوالے- خپلولي-

نیزکه:(نی-زه-که)اسم- واحد- مؤنث- گوړي- لوسکه- لوبتکه- جمع نیزکې-

نیژدې:(نیژ-دې)صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- نژدې- قریب- جُخت-

نیس:(نیس)اسم- واحد- مذکر- نیول- گرفت- گرفتارونه-

نیسان:(نی-سانْ)اسم- واحد- مذکر- پسرلے- بهار- څرمنے- څورمنے-

نیساني:(نی-سا-ني)صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- دَ پسرلي میاشتې سره متعلق-

نیسے:(ني-سے)اسم- واحد- مذکر- نوسے- چابي- کُنجي-

نیشت:(نیشت)اسم صفت- نیستي- نیشتوالے- غریبي- مفلسي-

نیښ:(نیښ)اسم- واحد- مذکر- جونگے- جونگ- دَ پینځو کالو ځوان اوښ-

نیښل:(نی-ښل)مصدر- دَ خر پهٔ خټه کښې بوختېدل-

نیک:(نیک)اسم- واحد- مذکر- خون بها-

نیکاره:(نی-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- نوکاره- سکونډاره-

نیکانه:(نی-کا-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ نیکهٔ کور- نیکهٔ گنی-

نیکهٔ:(نی-کهٔ)اسم- واحد- مذکر- (۱)درد- (۲)مشر سړی ته دَ خطاب کلمه- (۳)دَ مور پلار یا دَ پلار پلار-

نیگ:(نیگ)اسم- واحد- مذکر- حق- دَ ورور دَ وادهٔ پهٔ ورځ دَ خور (دَ مخې) دَ ورور پهٔ سر پلو اچونه او خپل نیگ (حق) غوښتنه-

نیل:(نیلْ)اسم- واحد- مذکر- (۱)اُودې رنگ- (۲)وسمه- (۳)دَ گوزار نشان- (۴)یو مرکب چې جامې پرې رنگولے کیږي- (۵)دریائې نیل-

نیلگر:(نیلْ-گر)اسم- واحد- مذکر- رنگرېز- هغه دوبي چې جامې رنگوي-

نیلگره:(نیل-گهٔ-ره)اسم- واحد- مؤنث- رنگرېزه- هغه ښځه چې جامو او لوپټو ته نیل او رنگ ورکوي-

نیلاب:(نی-لابْ)صفت- واحد- مذکر- دَ سوېلي دریائې سند نامه- اباسیند-

نیلام:(نی-لامْ)اسم- واحد- مذکر- دَ بولۍ پهٔ ذریعه قیمت وچتول او خرڅول-

نیلم:(نی-لم)اسم- واحد- مذکر- دَ اُودې رنگ یو قیمتي کانړے- دَ غمو یو قسم-

نیلو:(نی-لو)اسم- جمع- مؤنث- نیل- رنگ-

نیلوفر:(نی-لو-فر)اسم- واحد- مؤنث- دَ اُودې رنگ یو گل چې پهٔ اُبو کښې پېدا کیږي او دَ دوایي پهٔ توگه استعمالیږي- سوسن- نباتاتي نوم نیم فیا (NYMPHAEA) یا نوفر (NUPHAR)-

نیله:(نی-له)اسم- واحد- مؤنث- (۱)جرړه- جړې- بېخ- ریښه- (۲)یو ځوئ- هغه ځوئ چې بل ورور خور نهٔ لري- (۳)تراشه- توتنکے-

نیله توتا:(نی-له-تو-تا)اسم- واحد- مذکر- شین غنډے کانړے چې حکیمان يې دَ زخم رغېدو دَ پاره استعمالوي-

نیله کاږ:(نی-له-کاږ)اسم- واحد- مؤنث- یو بېدیاني خاروے چې ترگاوزه ستر وي- (هندي- نیل گائے)-

نیله گر:(نی-له-گر)صفت- واحد- مذکر- رنگرېز- رنگساز-

نیله مار:(نی-له-مار)اسم- واحد- مذکر- دَ مار یو قسم-

نیلي:(نی-لي)صفت- واحد- مذکر- سوسني- دَ نیل پهٔ شان-

نیلے:(نی-لے)اسم- واحد- مذکر- اس-

نیم:(نیم)اسم- واحد- مذکر- (۱)نیمائي- نیمامه- نیم بها- مینځ- میانځ- یو څیز چې دوه برخې شي دَ هغې یوه برخه- دوه برابرې حصې کونه- (۲)نوم- نامهٔ-

نیمامه:(نی-ما-مه)اسم- واحد- مؤنث- وُگوړئ نیم-

نیماني:(نی-ما-ني)اسم صفت- واحد- نیمایه- پهٔ نیمه- نیم پهٔ نیمه-

نیمایه:(نی-ما-یه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ نیمه- نیمائي-

نیم بند:(نیم-بند)اسم- واحد- مذکر- (۱)هغه کار چې مکمل شوے نهٔ وي- (۲)نیم پخته اگي- نرمه او یشېدلې اگي- نیم پوخته-

نیم بسمل:(نیم-بس-مل)اسم صفت- واحد- مذکر- نیم حلال شوے- نیم مړ-

نیمبو:(نیم-بو)اسم- واحد- مذکر- لیمبو- وُگوړئ نیبو-

نیمبولا:(نیم-بو-لا)اسم- واحد- مذکر- دَ یو پیرې نامه ده چې دَ بل رور نوم يې تیمبولا وو- دَ سوات دَ علاقې یو رومان سره تعلق لري-

نیم پاږ:(نیم-پاږ)اسم- واحد- مذکر- دَ پاږ نیمه- دوه چټاکي- نیم پاوے-

نیم پخته:(نیم-پخ-ته)صفت- واحد- مذکر/مؤنث- نیم پوخته-

نیم پوخته:(نیم-پوخ-ته)اسم صفت- واحد- مذکر/مؤنث- سنگک او مفلن- یو څیز داسې پخېدل چې نیم پوخ وي او نیم کچه وي-

نیم پهٔ نیم:(نیم-پهٔ-نیم)اسم مرکب- مذکر- نیمه برخه-

نیم پهٔ نیمه:(نیم-پهٔ-نی-مه)اسم مرکب- واحد- مذکر- نیم نیم- نیمائي-

نیمتاب:(نیم-تاب)صفت- واحد- مذکر- نیم انغښتے- نیم نغښتے-

نیمتر:(نیم-تر)صفت- واحد- مذکر- هغه څیز چې پوره لوند یا اوچ شوے نهٔ وي-

نیم تنے:(نیم-تهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- جاکټ- بنېن- یو قسم بنېن چې دَ قمیص دَ لاندې اغستے شي- واسکټ-

نیم جان:(نیم-جانْ)صفت- واحد- مذکر- (۱)مرگ ته نژدې- (۲)کمزورے- نیم خانے-

نیم جوش:(نیم-جوش)اسم مرکب- واحد- مذکر- نیمه خوا یشونه- نیم پخته-

نیم خانے:(نیم-خا-نے)صفت- واحد- مذکر- (۱)کمزورے- ډېر زیات

کمزورے- (۲)مرګ ته نژدې- نیم جان-

نیمچه:(نیم-چه)صفت- واحد- مذکر- (۱)هغه جاندار یا بې جانه څیز چې په اصل کښې ې د غیر خالصې مادې ګډون شوے وی- کم اصل- رذیل- (۲)دوه رګه- دورګه-

نیمڅے:(نیم-څے)اسم- واحد- مذکر- لمڅے-

نیم خام:(نیم-خام)صفت- واحد- مذکر- کچه- چې پوره پوخ نهٔ وی-

نیمخوا:(نی-مه-خوا)صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- ارمانی- نیمګړے- غیر مطمئن-

نیم خوبی:(نیم-خو-بی)اسم مرکب- واحد- مؤنث- نیمګړے خوب- داسې حالت چې د یو کس خوب پوره نهٔ شی-

نیمرخے:(نیم-رهٔ-خے)اسم- واحد- مذکر- ناشته- د سحر خوراک- نارے-

نیمروخے:(نیم-رو-خے)اسم- واحد- مذکر- غرمینی ډوډی- غرمنی روټی- ناشته- نارے- هغه خوراک چې پهٔ مړه ګېډه نهٔ وی-

نیمروز:(نیم-روز)اسم- واحد- مذکر- غرمه-

نیمرویه:(نیم-رو-یه)اسم- واحد- مؤنث- نیم پخته اګی-

نیمزاله:(نیم-زا-له)اسم صفت- واحد- مذکر- پوخ عمر- نیمزالے-

نیمزالی:(نیم-زا-لی)صفت- واحد- مؤنث- د نیمزاله مؤنث- د پوخ عمر ښځه-

نیمزالے:(نیم-زا-لے)صفت- واحد- مذکر- هغه سړے چې ځوانی ې پهٔ شا شوی وی- د پوخ عمر خاوند- نیمزاله-

نیمژبے:(نیم-ژهٔ-بے)صفت- واحد- مذکر- تړتړے- هغه سړے چې نیمې نیمې خبرې کوی- چاړا-

نیم ژواند:(نیم-ژواند)اسم صفت- واحد- مذکر- مړسپن- مړځېن- مړژواندے- ډېر کمزورے-

نیمژوبله:(نیم-ژوب-له)صفت- واحد- مذکر/مؤنث- زخمی- ژوبل شوے- مجروح-

نیم سرے:(نیم-سه-رے)اسم- واحد- مذکر- نیم سېرے- د نیم سیری درد- هغه درد چې پهٔ نیم سر وی-

نیمسېرے:(نیم-سې-رے)اسم- واحد- مذکر- نیم سرے- د نیم سر درد- (۲)دوه پاوه- د سېر نیمه-

نیمکاره:(نیم-کا-ره)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ نیمه برخه زمکه ورکونه- نیمه حصه- نامکمل-

نیمکښ:(نیم-کښ)اسم صفت- واحد- مذکر- نیم کښو- نیم ببرته- نیم لرې کړے شوے- نیم پرانستے- هغه څیز چې پوره مضبوطی سره بند کړے شوے نهٔ وی-

نیمکښو:(نیم-کهٔ-ښو)صفت- واحد- مذکر- نیم لرې- نیم پرانستے- هغه څیز چې پوره مضبوطی سره بند نهٔ وی- نیم کښ- نیم ببرته-

نیمکله:(نیم-کهٔ-له)صفت- واحد- مذکر- نامکمل- هغه کار چې پوره سر ته نهٔ وی رسېدلے-

نیمکونے:(نیم-کو-نے)صفت- هغه څیز چې څهٔ حصه ې پرېکړے شوې وی یا ماته کړے شوې وی-

نیمکی:(نی-مه-کی)اسم- مؤنث- د پښتنو د سندرو یو قسم-

نیمکې:(نیم-کې)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ پرتوګ کښې نوې ټوټه اچونه-

نیمکی ژبه:(نی-مه-کی-ژهٔ-به)صفت- واحد- مذکر- تړتړی ژبه-

نیمکے:(نی-مه-کے)صفت- واحد- مذکر- نیم- نامکمل- هغه څیز یا کار چې سر ته نهٔ وی رسولے شوے-

نیم ګرم:(نیم-ګهٔ-رم)صفت- واحد- مذکر- چې ډېر ګرم نهٔ وی- تړم-

نیمګړتوب:(نیم-ګړ-توب)اسم- واحد- مذکر- (۱)نامکمل توب- کمی- خامی- (۲)تنګدستی- احتیاج- حاجت مندی-

نیمګړتیا:(نیم-ګړ-تیا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نیمګړتوب- (۲)حاجت مندی-

نیمګړے:(نیم-ګهٔ-ړے)صفت- واحد- مذکر- چې پوره نهٔ وی- ناقص- نیمه خوا- ارمانی-

نیمګړے نیمه خوا:(نیم-ګهٔ-ړے-نی-مه-خوا)اسم مرکب- واحد- مذکر/مؤنث- ارمانی- هغه څوک چې ارمانی وی-

نیم ګز:(نیم-ګز)اسم- واحد- مذکر- د ګز نیمه- دوه پاوه-

نیموالے:(نیم-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ دوه خایه نیمونه- تقسیمونه-

نیمګور:(نیم-ګور)صفت- واحد- مذکر- نامکمل- نیم- ناتمام-

نیمول:(نی-مه-ول)مصدر متعدی- (۱)دوه ټوکړې کول- (۲)برابرول- (۳)تقسیمول- پهٔ مینځ دوه خایه کول-

نیمون:(نی-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ نیمول-

نیمونکے:(نی-مه-ون-کے)فاعل- واحد- مذکر- وګورئ نیمول-

نیمونګ:(نی-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نیمول-

نیمونه:(نی-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نیمول-

نیموهٔ:(نی-مه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نیمول-

نیمه:(نی-مه)اسم- واحد- مؤنث- د مرګ نهمه ورځ-

نیمه:(نی-مه)اسم صفت- واحد- مؤنث- نیم- (۱)دوه ټکړې- (۲)برابر- (۳)پهٔ مینځ دوه خایه-

نیمه:(نی-مه)مؤنث- یو قسم اوچت او لنډ پرتوګ-

نیمه خوا:(نی-مه-خوا)اسم- واحد- مذکر/مؤنث- حسرت- ارمان-

نیمه خلهٔ:(نی-مه-خلهٔ)اسم مرکب- واحد- مذکر- اشارې سره- پهٔ اسانی سره- بې له منته-

نیمه شپه:(نی-مه-شپه)اسم مرکب- واحد- مذکر- د پېشمنی نه مخکښې زخت- د شپې نیمائی-

نیمیغې سترګې:(نی-مي-غې-ستر-ګې)صفت- جمع- مؤنث- بې شرمه سترګې-

نیمېدل:(نی-مې-دل)مصدر لازم- دوهٔ خایه کېدل- دوه ټوټې کېدل- پهٔ دوه برابرو حصو کښې تقسیمېدل-

نیمېدن:(نی-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نیمېدل-

نیمېدنګ:(نی-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نیمېدل-

نیمېدنه:(نی-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نیمېدل-

نیمېدونکے:(نی-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ نیمېدل-

نیمېدهٔ:(نی-مې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نیمېدل-

نیمې نیم خورې:(نی-مې-نیم-خو-رې)اسمِ صفت- جمع- مؤنث- نیمې لواړې- نیم پخته-

نینخکه:(نین-خهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ګړی-

نینګړے:(نین-ګهٔ-ړے)صفت- واحد- مذکر- وګورئ نیمګړے-

نینوبے:(نی-نو-بے)اسم- واحد- مذکر- پونه- زیم- (افغانستان)-

نینولې:(نی-نو-لې)اسم- جمع- مؤنث- سپینې وریژې- (افغانستان)-

نینونے:(نی-نه-وهٔ-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه چاڼ چې وریژې پرې پاکولے شي- چڼوړنے- جمع نینونی- (افغانستان)-

نینه:(نی-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ غنمو یا دَ جوارو دانه چې ورته شوې وی- ورته شوې دانه-

نینه چاوډے:(نی-نه-چاوډ-دے)اسم صفت- واحد- مذکر- غم ځپلے- غمزده- مصیبت وهلے- دردېدلے- جمع نینه چاوډی-

نینې:(نی-نې)اسم- جمع- مؤنث- ورتې شوې دانې-

نینېدل:(نی-نې-دل)مصدر لازم- نینې کېدل- ورتېدل- تړقېدل- وریتېدل-

نینېدن:(نی-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نینېدل-

نینېدنګ:(نی-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نینېدل-

نینېدنه:(نی-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نینېدل-

نینېدونکے:(نی-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ نینېدل-

نینېدهٔ:(نی-نې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نینېدل-

نینې نینې:(نی-نې-نی-نې)اسمِ مرکب- جمع- مؤنث- پسخېدنه- ډېر لېواله کېدنه-

نیښه:(نه-ای-نه/نه-یهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ نائی ښځه- نائنېه- مشاطه- مشاطې- هغه ښځه چې دَ ناویانو سر ځنه او سینګار جوړوی- جمع نیښې-

نیو:(نیو)اسم صفت- نوے- تازه- جدید- (انګریزی)-

نیوټران:(نیو-ټران)اسم- جمع- مذکر- پهٔ ایټم کښې هغه جز چې نهٔ پرې جمع چارج زی او نهٔ منفی-

نیوز:(نیوز)اسم- واحد- مذکر- سیلاب- نیز- چله- طغیانی-

نیوزوړے:(نیو-زه-رهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- ګندخر- ګنګخر- لهه- لحه- ګنګخرے-

نیوش:(نیوش/نی-وش)اسم- واحد- مذکر- (۱)اورېدنه- (۲)اورېدونکے (صفت)-

نیوشنده:(نیو-شن-ده)صفت- واحد- مذکر- اورېدونکے-

نیوکه:(نی-وَ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)نیونه- خپلونه- (۲)کوژدن- کوېژدن- کوېدن- (۳)قبضه کونه- اخستنه- (۴)ایجاره کونه- اجاره کونه-

نیول:(نی-ول)مصدر متعدی- ټینګول- اخستل- ګرفتارول- راټینګول- نیسل-

نیولے:(نی-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع نیولی- مؤنث نیولې- وګورئ نیول-

نیون:(نی-ون)حاصل مصدر- وګورئ نیول-

نیونکے:(نی-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ نیول-

نیونګ:(نی-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نیول-

نیونه:(نی-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نیول-

نیوهٔ:(نی-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نیول-

نیهامول:(نی-هٔ/ا-مه-ول)مصدر متعدی- نظر نه اخوا کول- پس پرده کول- غائبول- غېبول-

نیهامون:(نی-ها-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ نیهامول-

نیهامونکے:(نی-ها-مه-وون-کے)فاعل- واحد- مذکر- وګورئ نیهامول-

نیهامونګ:(نی-ها-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نیهامول-

نیهامونه:(نی-ها-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نیهامول-

نیهاموهٔ:(نی-ها-مه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نیهامول-

نیهامېدل:(نی-ها-مې-دل)مصدر لازم- دَ نظر نه اخوا کېدل- دَ نظر نه غېبېدل- پهٔ نظر نهٔ راتلل- غیبېدل-

نیهامېدن:(نی-ها-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ نیهامېدل-

نیهامېدنګ:(نی-ها-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ نیهامېدل-

نیهامېدنه:(نی-ها-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نیهامېدل-

نیهامېدونکے:(نی-ها-مې-دون-کے)فاعل- واحد- مذکر- جمع نیهامېدونکی- مؤنث نیهامېدونکې- وګورئ نیهامېدل-

نیهامېدهٔ:(نی-ها-مې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ نیهامېدل-

نېب:(نېب)اسم- (۱)طرز- طریقه- روش- (۲- متعلق فعل)مسلسل- پرله پسې-

نېچکے:(نېچ-کے)اسم- واحد- مذکر- خوره ګیا- جمع نېچکی-

نېچے:(نې-چے)اسم- واحد- مذکر- دَ دروازې دستکے- چوکاټ-

نېخو:(نې-خو)اسم- واحد- مذکر- مرسته کونکے- مرستیال-

نیرنګ:(نی-رنګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)مکر و فریب- ټګی- چل- چم- (۲)جادو- (۳)چالاکی-

نیرنګی:(نی-رنګ-ګی)اسم- واحد- مؤنث- جادوګری-

نیرو:(نی-رو)اسم- واحد- مذکر- (۱)طاقت- قوت- (۲)زورازمائی-

نیره:(نی-ره)اسم- واحد- مؤنث- یو قسم بوټے چې پاڼه یَ دَ نظر ماتے دَ پاره پکارولے شي- نظرپاڼه-

نېزوړی:(نې-زو-ړی)اسم- جمع- مؤنث- شاړړی- ګنګخر- کریانې-

نېزه:(نې-زه)اسم- واحد- مؤنث- د جنګ وسله- دَ اسپنې جوړه وړه سومبه- هغه لرګے چې پهٔ سر کښې یَ تېره سومبه لګېدلې وی-

نېزه باز:(نې-زه-باز)صفت- واحد- مذکر- چې پهٔ نېزه وهلو کښې ماهر وی-

مغه څوک چې نېزه وهي-

نېزه بازي:(نې-زه-با-زي)اسم مرکب- واحد- مؤنث- دَ نېزې وهلو فن-

نېزه وار:(نې-زه-وار)اسم- واحد- مذکر- نېغ- رسا- سيخ-

نېزې:(نې-زې)اسم- واحد/جمع- مؤنث- مغه کاڼي چې تېرول پرې کولے کيږي- چې چاقو چاړه پرې تېره کولے کيږي-

نېست:(نېست)صفت- واحد/جمع- مذکر- دَ هست متضاد- نيشت- نيشتوالے- (م- فارسي)-

نېست ګار:(نېست-ګار)صفت- واحد- مذکر- مفلس- غريب- نېستمن- خوار- فقير- (م- فارسي)-

نېستګاري:(نېست-ګا-ري)اسم- واحد- مؤنث- غريبي- مُفلسي- (م- فارسي)-

نېستمن:(نېست-من)اسم صفت- وګورئ نېست ګار-

نېستول:(نېس-تهٔ-وَل)مصدر متعدي- دَ بېخه وېستل- ختمول- بربادول- تباه کول-

نېستون:(نېس-تهٔ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ نېستول-

نېستونګ:(نېس-تهٔ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نېستول-

نېستونه:(نېس-تهٔ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نېستول-

نېستوهٔ:(نېس-تهٔ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نېستول-

نېست و نابود:(نېست-وُ-نا-بود)صفت- واحد/جمع- مذکر- تباه و برباد- تباه شوے- برباد شوے- پوپنا-

نېسته هسته:(نېس-ته-هس-ته)اسم مرکب- چې نېشتوالے او شتهٔ والے يُ برابر وي-

نېستي:(نېس-تي)اسم- واحد- مؤنث- غربت- افلاس- غريبي- خواري- مسکيني- فقيري-

نېستي خواري:(نېس-تي-خوا-ري)اسم مرکب- واحد- مؤنث- خواري- غريبي- مفلسي- تنګدستي-

نېستېدل:(نېس-تې-دَل)مصدر متعدي- فنا کېدل- ختمېدل- دُ جرړو وېستل-

نېستېدن:(نېس-تې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ نېستېدل-

نېستېدنګ:(نېس-تې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ نېستېدل-

نېستېدنه:(نېس-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نېستېدل-

نېستېدونکے:(نېس-تې-دون-کے)فاعل- جمع نېستېدونکي- مؤنث نېستېدونکې- وګورئ نېستېدل-

نېسخ:(نې-سخ)اسم صفت- واحد- مذکر- شکمن- بې اعتماده- بې اعتباره- بدګومان- بدګمان- نېسخه-

نېش:(نېش)اسم- واحد- مذکر- (۱)لشه- لېشه- (۲)ازغے- اغزے- (۳)دَ نېزې سوکه- (۴)زهر-

نېشت:(نېشت)اسم صفت- نېستي- نشتوالے- غريبي- مفلسي- نيشت-

نېشکر:(نېش-کر)اسم- واحد- مذکر- شمار- شمېر-

نېشکر:(نې-شه-کر)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ګنے-

نېښ:(نېښ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ چرګ دَ پښې خره- (۲)دَ بوټي تېغ- (۳)نېش- جمع نېښونه-

نېښتر:(نېښ-تر)اسم- واحد- مذکر- (۱)نشتر- (۲)نېښتر-

نېغ:(نېغ)صفت- واحد/جمع- مذکر- لک- ولاړ- راست- (۲)چاسره جنګ ته اماده لېدنه- دَ جنګ حالات پېدا کونه-

نېغرېتوب:(نېغ-ړي-توب)اسم- واحد- مذکر- بې شرمي- کلک سترګي- وچ سترګي-

نېغکے:(نې-غهٔ-کے)صفت- واحد- مذکر- دَ نېغ اسم تصغير- مشروټې- مشروټے- کلک سترګے-

نېغکے:(نې-غهٔ-کے)اسم- واحد- مذکر- پهٔ اَرټ کښې مغه لرګے چې پهٔ کومې کښې شکته لګېدلے وي چې ختِه بره نهٔ راپرېږدي-

نېغ والے:(نېغ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ کوږوالي ضد- لکوالے- سموالے- (۲)انتشار- بغاوت- سرکشي-

نېغول:(نې-غُ-وَل)مصدر متعدي- لکول- ولاړول- برابرول- خم اېستل- سمول- وچتول- پورته کول- هسکول-

نېغون:(نې-غُ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ نېغول-

نېغونکے:(نې-غُ-ون-کے)فاعل- واحد- واحد- مذکر- وګورئ نېغول-

نېغونګ:(نې-غُ-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ نېغول-

نېغونه:(نې-غُ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نېغول-

نېغوهٔ:(نې-غُ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ نېغول-

نېغه:(نې-غه)اسم- واحد- مؤنث- هسکه- جګه- اوچته-

نېغي:(نې-غي)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ اندام نهاني کښې حساس ځاے-

نېغېدل:(نې-غې-دَل)مصدر لازم- (۱)لکېدل- سيدا کېدل- سمېدل- نېغ روانېدل- اوچتېدل- پورته کېدل- هسکېدل- (۲)ګستاخ کېدل-

نېغېدن:(نې-غې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ نېغېدل-

نېغېدنګ:(نې-غې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ نېغېدل-

نېغېدنه:(نې-غې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ نېغېدل-

نېغېدونکے:(نې-غې-دون-کے)اسم فاعل- جمع نېغېدونکي- مؤنث نېغېدونکې- وګورئ نېغېدل-

نېغېدهٔ:(نې-غې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ نېغېدل-

نېغۍ:(نې-غۍ)اسم- واحد/جمع- مؤنث- بې شرمه او بې حيا ښځه-

نېک:(نېک)اسم- واحد- مذکر- مغه ضمانت چې دَ روغې پهٔ وخت دَ وړاندې نه مخالفو فريقو نه اخستے شي- واک-

نېک:(نېک)صفت- واحد- مذکر- (۱)ښهٔ- تقوىٰ دار- (۲)پرهېزګار- پاکدامن- شريف- رحمدل- مهذب-

نېک:(نېک)اسم- واحد- مذکر- نوک- دَ انسان نوک- دَ ځناور نوکه- (عاميانه قرات)-

نېک بخت:(نېک-بخت)اسم صفت- واحد- مذکر- دُ بدبخت ضد- خوش قسمت-

نېک بختی:(نېک-بخ-تي)اسم- واحد- مؤنث- دُ بدبختی ضد- خوش قسمتي- نېکمرغی- خوش نصیبی- جمع نېک بختۍ-

نېک خوا:(نېک-خوا)اسم صفت- واحد- مذکر- خېرخوا- خواخوږے- دوست- ممدرد- نېکي غښتونکے- جمع نېک خواهان-

نېک خویه:(نېک-خو-یه)اسم صفت- واحد/جمع- مذکر/مؤنث- ښهٔ خوئ لرونکے- ښهٔ اخلاق لرونکے- دُ ښهٔ خوئ خاوند- خوش اخلاقه-

نېکر:(نے-کر)اسم- واحد- مذکر- خټلنګ- جانګے-

نېکر:(ني-کر)اسم- واحد- مذکر- نوکر- ملازم- (بل قرات)-

نېکرې:(ني-کهٔ-ری)اسم- واحد- مؤنث- نوکری چاکری- (بل قرات)-

نېکمرغ:(نېک-مرغ)اسم صفت- واحد- مذکر- وګورئ نېک بخت-

نېکمرغی:(نېک-مر-غي)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ نېک بختي-

نېک نامی:(نېک-نا-مي)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ ښهٔ نامه یادېدنه- ښهٔ نامه لرنه- پهٔ نېکه یادېدنه- جمع نېک نامۍ-

نېک نیتی:(نېک-نیه-تي)اسم- واحد- مؤنث- نېک نیت لرنه- نېکه اراده لرنه- ښهٔ نیت لرنه- جمع نېک نیتۍ-

نېکو:(ني-کو)صفت- واحد- مذکر- ښهٔ- نېک سیرت- نېک خصلت-

نېکوکار:(ني-کو-کار)اسم صفت- واحد- مذکر- نېک کار کونکے- نېک عمله- نېک کردار- پاک لمنے- راستمند- پرهېزګار- متقي- مؤنث نېکوکاره- جمع نېکوکاران-

نېکوکاری:(ني-کو-کا-ري)اسم- واحد- مؤنث- نېک کارونه کونه- نېک عمل کونه- پاک لمن توب- راستي- پرهېزګاری- جمع نېکوکارۍ-

نېکی:(ني-کي)اسم- واحد- مؤنث- ښېګړه- ښهٔ والے- خوبي-

نېله:(ني-له)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ تاش کښې نهٔ خاله لرونکې پاڼه- نهٔ خالي-

نېله:(ني-له)اسم- واحد- مذکر- دُ مار یو قسم-

نېنکه:(نېن-نهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- ګوډۍ- دُ ماشومانو دُ لوبو ګوډۍ-

نېندره:(نېند-ره)اسم- واحد- مؤنث- هغه روپۍ چې دُ وادهٔ ښادۍ پهٔ موقع ئې خلق دُ کور خاوندانو له دُ بدل پهٔ توګه ورکوی-

نېنک:(نے-نک)اسم- واحد- مذکر- دُ سترګو کاتے-

نېنګل:(نېن-ګل)مصدر لازم- امید لرل- توقع ساتل-

نېوی:(نے-وی)اسم- واحد- مؤنث- سمندری فوځ-

نېیل:(ني-یل)صفت- واحد- مذکر- توده ګرمه دُ دروږ ډکه مرطوبه هوا-

نے:(نے)اسم- واحد- مذکر- شپېلۍ- نل- نچه-

نے:(نے)لاحقه چې دُ نامې یا صفت نه وروستو راشي نو دُ نسبت معنی ورکوی لکه پروني، اوسنے-

ئ: (ځی-رل)، ې: (مې-ره-ول)، ی: (پیا-لي)، ـې: (تړ-دېې) تفصیل دُ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ڼ:(نوڼ)حرف- دَ پښتو دَ پټی اووهٔ دیرشم حرف- دا حرف دَ پښتو دَ یو لفظ پهٔ سر کښې هم نهٔ راځی- دَ لفظ پهٔ مینځ یا اخر کښې راځی- اواز ېٔ دَ نون غـنـه، ړ او نـون غـنـه مـرکـب اوار زی لـکـه کـوڼ، رڼـا، وروڼـه وغـیـره-

دَ ابجدو پهٔ حساب ېٔ قیمت دَ نون برابر یعنی پنځوس دے-

نی:(نی)دَ اسم تصغیر علامت- لکه کوټې نه کوټنی، دَ کوزې نه کوزنی-

---

و:(واؤ)دَ اردو درې دېرشم، دَ فارسي دېرشم، دَ عربي څليريشتم، دَ هندي يو کم دېرشم او دَ پښتو اتهٔ دېرشم حرف- دَ ابجدو پهٔ حساب ددې شپږ عددونه مقرر دي-

وا:(وا)حرف ندا- دَ رابللو دپاره پکارولے شي- لکه وا سړيه-

وا:(وا)صفت- کشاده- جدا-

وابسته:(وا-بس-ته)اسم صفت- تړلے شوے- متعلق- رشته دار- نوکر- تعلق لرونکے-

وابستګي:(وا-بس-ته-ګي)اسم- سروکار- تړون- تعلق لرنه-

واپس:(وا-پس)اسم- پستنه- بېرته-

وات:(وات)اسم- عېب- جمع واتونه-

وات:(وات)اسم- لار- سړک- سرک- واټ- جمع واتونه-

واتهٔ:(وا-تهٔ)حاصل مصدر- دَ وتل مصدر نه حاصلِ مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه-

واټ:(واټ)اسم- (۱)لار- سړک- (۲)وټ- وړ- پټے- زمکه- (۳)چم- کوڅه- محلت- جمع واټونه-

واټمېچ:(واټ-مېچ)اسم- (۱)دَ سړک مېچ کولو پېمانه- (۲)دَ لارې ناپ کولو پېمانه-

واټن:(وا-ټن)اسم- فاصله- دَ دوؤ ځايونو تر مينځه لرې والے- پهٔ برابر فاصله- مساوي فاصله-

واج:(واج)اسم- دوه هم جنس خپلو کښې بدلونه- دَ يو څيز بل څيز سره بدلونه- سودا کونه- څيزونه دَ څيزونو پهٔ بدل اخستنه خرڅونه- څيز دَ څيز پهٔ بدل اخستنه او دَ څيز پهٔ بدل ورکونه- جمع واجونه-

واجب:(وا-جب)اسم- ضروري- چې کول ئې لازمي پکار وي- هغه عبادت چې کول ئې ضروري وي او نهٔ کول ئې ګناه لازميږي- وتر واجب-

واجب الوجود:(وا-ج-بل- وُ-جود)اسم صفت- دَ الله تعالىٰ يو صفتي نوم-

واجبول:(وا-ج-به-ول)مصدر متعدي- لازم کول-

واجبي:(وا-ج-بي)اسم صفت- (۱)ضروري- (۲)مناسب- (۳)لږ-

واجبېدل:(وا-ج-بې-دل)مصدر لازم- لازم کېدل-

واڅکول:(واڅ-که-ول)مصدر متعدي- راکښل- زغمل- جذب کول-

واڅکون:(واڅ-که-ون)حاصل مصدر- وګورئ واڅکول-

واڅکونکے:(واڅ-که-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع واڅکونکي- مؤنث واڅکونکې- وګورئ واڅکول-

واڅکونه:(واڅ-که-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ واڅکول-

واځے:(وا-ځے)اسم- رخسار- بارخو- انګے-

واحد:(وا-حد)اسم- (۱)يو- مفرد- صرف- (۲)دَ خدائ تعالىٰ يو صفتي نوم-

واخ:(واخ)اسم صوت- فرياد- آه و زاري- آه و زاري کونه-

واخله:(واخ-له)امر- دَ اخستل مصدر فعل امر- وګورئ اخستل-

واخير:(وا-خير)اسم- اخور- جمع واخيرونه-

وادګنے:(واد-ګه-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ وادهٔ خلمے- ودګون- وږېزن- زوم- ودګنے- شاوهٔ- شازلهٔ- ودګينے- جمع وادګيني-

واده ګاټه:(وا-ده-ګا-ټه)اسم- ګټه- نقصان- کمے- زياتے- جمع وادې ګاټې-

وادهٔ:(وا-دهٔ)اسم- نکاح کونه- جمع ودونه-

وادهٔ تړ:(وا-دهٔ-تړ)اسم- واحد- مذکر- دَ وادهٔ نېټه-

وادهٔ تون:(وا-دهٔ-تون)اسم- واحد- مذکر- دَ وادهٔ ځائې-

وادهٔ زلمے:(وا-دهٔ-زل-مے)اسم مرکب- واحد- مذکر- وګورئ وادګنے-

وادهٔ ښادي:(وا-دهٔ-ښا-دي)اسم- خوشحالي- دَ وادهٔ خوشحالي-

وادي:(وا-دي)اسم- ښکته زمکه- کنده- دَ دوؤ غرونو ترمينځه زمکه پهٔ کومه چې دَ سېلاب اُبهٔ تېرېږي-

وار:(وار)اسم- واحد- مذکر- (۱)نمبر- لمبر- پاړه- ځل- پېره- (۲)حمله- ګزار- (۳)خواني- دور- (۴)زخم- (۵)ديکه- (۶)موقع- (۷)دَ ماده ښاروي نر ښاروي ته لېواله کېدنه- (دې صورت کښې ورسره راوړل مصدر استعماليږي)-

وار:(وار)لاحقه- يوه لاحقه چې دَ اسم نه پس راځي- لکه اُمېدوار- سزا وار-

وار پار:(وار-پار)اسم- هوش- حواس- ساه صورت- ساه-

وار پهٔ وار:(وار- پهٔ- وار)متعلقِ فعل- نمبر پهٔ نمبر- هر يو پهٔ خپل وار يو بل پسې- پهٔ قطار- وار تر وار-

وار تر وار:(وار- تر- وار)متعلقِ فعل- وګورئ وار پهٔ وار-

وار تېرل:(وار-ته-ړل)مصدر- وار بندي کول- خپلو کښې پهٔ څهٔ فېصله رسېدل-

وارتل:(وار-تل)مصدر- زور سره ويشتل- لرې غرځول- ارتول-

وارث:(وا-رث)اسم- هغه سړے چې دَ چا ميراث ورته ورسي- سرپرست- خاوند- مېړهٔ- ميراث خوړونکے مشر- جمع وارثان-

وارخطا:(وار-خه-طا)صفت- زېربېدلے- ترېدلے- ويرې اخستے-

وارخطاني:(وار-خه-طا-ني)اسم- زيره-

وارد:(وا-رد)اسم- راتلونکے- موجود- رسېدونکے-

واردات:(وا-ر-دات)اسم- سانحه- حالت- پېښه- جنګ جګړه- هنګامه- حادثه- (جمع دَ واحد پهٔ شکل استعماليږي)-

واردول:(وا-ر-ده-ول)مصدر- پېدا کول- دَ بهرنه واقع کول- واقع کول-

وارده:(وا-ر-ده)اسم- واحد- مؤنث- پېښه- واقعه- حادثه- چل-

واردېدل:(وا-ر-دې-دل)مصدر- صادرېدل- څهٔ واقعه پېښېدل-

وارډ:(وارډ)اسم- واحد- مذکر- (۱)پهٔ هسپتال کښې دَ بيمارانو يوه خاص برخه- (۲)دَ بلدنې يوه حلقه يا علاقه- (۳)دَ نابالغ دَ ذاتي جائېداد دَ سرپرستۍ دپاره دَ عدالت دَ طرف نه مقرر کړے شوے تنظيم-

وارډن:(وار-ډن)اسم- واحد- مذکر- دَ وارډ حفاظت کؤنکے- څوکيدار- ناظر- مشر- (م- انګريزي)-

وارړهٔ:(وار-ړهٔ)اسم صفت- وارړه- وړ- مناسب-

وارړهٔ:(وار-ړهٔ)اسم- جمع- پخ شوي کندې- دَ لنګانهٔ نه پس دَ ښاروي

د وړومبو څو ورځو پیٔ- اُړوهٔ- وروه-

وارسته:(وا-رس-ته)اسم- واحد- مذکر- آزاد-

وارکر:(وا-ره-کر)اسم- واحد- مذکر- د وار مالک- وار لرونکے- واریکرړے- پیره دار- وارکړے- جمع وارکری-

وارکړے:(وار-کهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وارکر-

وارنټ:(وا-رنټ)اسم- واحد- مذکر- د ګرفتارئ حکم- د مالیئ د وصولولو حکم- پروانه- حکمنامه- فرمان- ورنټ- جمع وارنټونه- (م- انګریزی)-

وارنش:(وار-نش)اسم- واحد- مذکر- یو قسم بهېدونکی سریښ چې د لرګی د سامان د پالش د پاره پکار راوستے شی-

وارننګ:(وار-ننګ)اسم- واحد- مذکر- خبردارے ورکونه- تنبیه ورکونه- (م- انګریزی)-

وار وار:(وار-وار)متعلق فعل- اکثر- زیاتی- ډېر ځله-

واره:(وا-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فرصت- موقع- (۲)خپلې فاندې ته کتنه- (۳)پیره-

واره ګره تبه:(وا-ره-ګهٔ-ره-تهٔ-به)اسم- واحد- مؤنث- واریزه تبه- هغه تبه چې کله وی او کله نهٔ وی- ملیریا-

واره من:(وا-ره-من)اسم صفت- د فاندی وچتولو جوګه-

واری:(وا-ری)اسم صفت- واریز- هغه ماده څناور چې وار ئ راوړے وی-

واریز:(وا-ریز)اسم صفت- مؤنث- واریزه- وګورئ واری-

واریزه:(وا-ری-زه)اسم صفت- مؤنث- (۱)وګورئ واریز- (۲)د وار سره متعلق-

واریزه تبه:(وا-ری-زه-تهٔ-به)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ واره ګره تبه-

واریکړے:(وا-ری-کهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وارکر-

واړه:(وا-ړه)اسم صفت- تمام- پوره پهٔ پوره- همه- ټول-

واړهٔ:(وا-ړهٔ)اسم- جمع- مذکر- د ورزکی جمع- وګورئ ووړکے-

واړهٔ زاړهٔ:(وا-ړهٔ-زا-ړهٔ)اسم- جمع- مذکر- وګورئ واړهٔ زاړهٔ-

واړهٔ زاړهٔ:(وا-ړهٔ-زا-ړهٔ)اسم مرکب- جمع- مذکر- اولاد- بچه پونګ- زاړهٔ زاړهٔ- بال بچ- بچ کچ-

واز:(واز)متعلق فعل- بیا- یو ځل بیا-

واز:(واز)اسم صفت- (۱)وبت- ارت بیرت- (۲)بې شرم- مؤنث وازه-

وازخلے:(واز-خو-لے)اسم صفت- وازه خلهٔ لرونکے- پاګل- کم عقل- کړتو-ترتو-

وازده:(واز-ده)اسم- واحد- مؤنث- وازګه- چربی- د حیوانی جسم په غوښه او وینه کښې شامله د غوړوالی برخه چې سپین یا زیړ رنګ لری او چې زیلی شی نو روغن تری جوړیږی-

وازسترګے:(واز-ستر-ګے)اسم صفت- وازې سترګې لرونکے- بې شرمه- بې حیا- جمع وازسترګی-

وازکټ:(واز-کټ)اسم- واحد- مذکر- واسکټ-

وازګه:(واز-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وازده-

وازول:(وا-زه-ول)مصدر- ارتول-

وازون:(وا-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ وازول-

وازونکے:(وا-زه-وون-کے)اسم فاعل- جمع وازونکی- مؤنث وازونکې- وګورئ وازول-

وازونګ:(وا-زه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وازول-

وازونه:(وا-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وازول-

وازه:(وا-زه)اسم صفت- مؤنث- د واز مؤنث- وګورئ واز-

وازېدل:(وا-زې-دل)مصدر لازم- ارتېدل- خلاصېدل-

وازېدن:(وا-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ وازېدل-

وازېدنګ:(وا-زې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ وازېدل-

وازېدنه:(وا-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وازېدل-

وازېدونکے:(وا-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وازېدونکی- مؤنث وازېدونکې- وګورئ وازېدل-

وازېدهٔ:(وا-زې-دهٔ)حاصل مصدر از د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ وازېدل-

واژګون:(واژ-ګون)اسم صفت- (۱)منحوس- بدبخت- (۲)اپوټه- اړولے- نسکور-

وارمه:(وار-مه)اسم- واحد- مؤنث- ورمه- ایشمه- د سحر هوا- نرے باد- جمع وارمې-

واست:(واست)د ضمیر مخاطب جمع چې د ماضی پهٔ صیغه کښې استعمالیږی- لکه تاسو راغلی واست- (افغانستان)-

واسطه:(وا-س-طه)اسم- واحد- مؤنث- تعلق- تړون- ربط- علاقه- ذریعه- دوستی- پیښه- وسیله- جمع واسطې (م- عربی)

واسع:(وا-سع)اسم صفت- (۱)ارت- خورېدونکے- خوروور (۲)د خدائ تعالی یو صفتی نوم- (م- عربی)-

واسکټ:(واس-کټ)اسم- واحد- مذکر- وازکټ- سینه بند- نیم تنے- (م- انګریزی)-

واسکه:(واس-که)متعلق فعل- وسکه- دستی- اوس- فوری-

واسه:(وا-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)د پشکال میاشت- (۲)د غنم د وری لشه-

واسیکه:(وا-سی-که)متعلق فعل- وګورئ واسکه-

واش:(واش)اسم- (۱)واښهٔ- ګیا- (۲)صفت- بې پروا- بې باکه- فحش-

واښ:(واښ)اسم- (۱)د وړی غټه رسی- (۲)د انګورو غنچک- وګورئ وښکالے-

واښهٔ:(وا-ښهٔ)اسم- واحد جمع مذکر- مؤنث- ګیاه- سبزه-

واښهٔ ماښهٔ:(واښه-ما-ښهٔ)اسم مرکب- واحد جمع- مذکر مؤنث- واښهٔ- ځل پل-

واښی:(وا-ښی)اسم- لړ- مار-

واصف:(وا-صف)اسم- واحد- مذکر- تعریف کونکے- خوبی بیانونکے- صفت کونکے- ستاینونکے- جمع واصفان-

واصل:(وا-صل)اسم- واحد- مذکر- شاملېدونکے- یو ځائ کېدونکے-

وصولېدونکے- ملاقات کونکے- رسېدونکے- (م- عربی)-

واصل باقي:(وا-صل-با-قي)اسم صفت- وصول شوے او باقي رقم-

واصل باقي نويس:(وا-صل-با-قي-نه-ويس)اسم- واحد- مذکر- د محکمه مال يو ملازم-

واضح:(وا-ضح)صفت- ښکاره- صفا- رون- ښۀ پۀ صفايئ سره- چې هر څوک پرې پوهيږي- ظاهر- (م- عربی)-

واضع:(وا-ضع)اسم صفت- واحد- مذکر- سازونکے- جوړونکے- (م- عربی)-

واعظ:(وا-عظ)اسم- واحد- مذکر- نصيحت کؤنکے- ناصح- وعظ کونکے- (م- عربی)-

واعي:(وا-عي)اسم- واحد- مذکر- ياد ساتونکے- (م- عربی)-

واف:(واف)اسم- بلبل- سندرغاړے- خوږژبان-

وافر:(وا-فر)اسم- (۱)زيات- ډېر- ګن تعداد کښې- (۲)د علم عروض د يو بحر نوم- (م- فارسی)-

واق:(واق)اسم- مذکر- غرغر- د سپي غپارے-

واق:(واق)اسم- واحد- مذکر- د مرغابئ پۀ شان يو مارغۀ چې کبان خوری او واق واق چغې وهي- واقي- جمع واقان-

واقع:(وا-قع)اسم- کېدونکے- راتلونکے- موجود- (م- عربی)-

واقع کېدل:(وا-قع-کې-دل)مصدر ترکيبي- پېښېدل-

واقعه:(وا-ق-عه)اسم- واحد- مؤنث- پېښه- (م- عربی)-

واقعي:(وا-ق-عي)اسم- پۀ رښتيا- بالکل صيح- سکښ- پۀ حقيقت کښې- (م- عربی)-

واقف:(وا-قف)اسم- واحد- مذکر- بلد- اشنا- بلدی- پېژندګلو سرے وغيره- (م- عربی)-

واقف کېدل:(وا-قف-کې-دل)مصدر ترکيبي- اشنا کېدل-

واقفيت:(وا-ق-فی-يت)اسم- واحد- مذکر- پېژندګلي- واقف کېدنه- (م- عربی)-

واقی:(وا-قی)اسم- واحد- مذکر- يو مارغۀ- وګورئ واق-

واک:(واک)اسم- واحد- مذکر- طاقت- توان- اختيار- حق- (م- فارسی)-

واک اختيار:(واک-اخ-تيار)اسم- وګورئ واک- (م- فارسی)-

واکدار:(واک-دار)اسم صفت- طاقتور- واکمن- اختيارمن- (م- فارسی)-

واک دست:(واک-دست)اسم- لاس- واکې- (م- فارسی)-

واکمن:(واک-من)اسم صفت- (۱)واکوال- زسمن- د اختيار مالک- واکمن- (۲)باچا- بادشاه- (م- فارسی)-

واکمني:(واک-مۀ-ني)اسم- (۱)اختيار لرنه- واک لرنه- وس لرنه- (۲)باچاهي- بادشاهي- (م- فارسی)-

واکوال:(واک-وال)اسم صفت- د اختيار مالک- د حکومت مالک-

واکوالي:(واک-وا-لي)اسم- مرضي- حکومت- اختيار-

واکي:(وا-کي)لاحقه- د لاحقې پۀ توګه استعمالېدونکے توری چې فاعلي معنی پيدا کوی- لکه خپل واکی-

واګ:(واګ)اسم- واحد- مذکر- (۱)د يو کال اُوښ- (۲)د پېښو کالو ګېډورے- (۳)وری-

واګن:(وا-ګن)اسم صفت- ګېچ- ډب ډوب- پرېشانه- واګڼ-

واګڼ:(وا-ګڼ)اسم صفت- خفه- زهير- بې قراره- ويربدلے- پرېشان- ګنګس- واګن-

واګه:(وا-ګه)اسم- واحد- مؤنث- د څرمنې پړے چې د آس يا اُسپې د قابو کولو د پاره د آس يا اسپې پۀ خلۀ کښې د اسپنې ښنې پورې تړلے شوے وی- جمع واګې-

وال:(وال)لاحقه- د والا مُخفف- د نسبت لاحقه چې د نوم سره راشي نو فاعل ترې جوړ کړی- لکه- تانګې وال-

وال:(وال)اسم- والو- د ګړی د کمانئ وېښته-

والا:(وا-لا)فاعلي علامت- (۱)پۀ مرکباتو کښې پکارېدونکے توری لکه تانګې والا- د ملکيت ښکاره کولو علامت- (۲)اسم- هسک- د وُچتې مرتبې خاوند- عزتمند-

وال تروړ:(وال-تروړ)اسم- واحد- مذکر- يوه دانه، ننکی چې د وېښتۀ لۀ ماتېدو سره راخيژی- (م- پنجابی- وال وېښتۀ- تروړ ماتېدۀ)-

والد:(وا-لد)اسم- واحد- مذکر- پلار- د مور مېړۀ- (م- عربی)-

والده:(وا-ل-ده)اسم- واحد- مؤنث- د پلار ښځه- مور- ابی- (م- عربی)-

والدين:(وا-ل-دين)اسم- جمع- مور پلار- (م- عربی)-

واسلام:(وس-سه-لام)اسم- او سلامتيا دې وی پۀ تا- د کلام يا بيان اخر ته استعمالېدونکې دعا- (م- عربی)-

والکے:(وال-کے)اسم- واحد- مذکر- يخنی- زکام- ساړۀ وهنه- نزله- د پوزې بهېدنه-

والله:(ول-لا) کلمۀ قسميه:(۱)پۀ خدایٔ پاک مې دې قسم وی- (۲)بې شکه- رښتيا- (م- عربی)-

والله اعلم:(ول-لا-مو-عه-لم)کلمه- خدایٔ ښۀ خبر دے- (م- عربی)-

والۀ:(وا-لۀ)اسم- واحد- مؤنث- وله- (۱)د اُبو نهر- د نهر يا سيند نه د اُبۀ خور پۀ غرض رابيلې کړې شوې چاړ چاړ اُبۀ- (۲)د صفا او پاکو اُبو ناله- (۳)شرشره- شُرشُره-

والي:(وا-لي)اسم- واحد- مذکر- خاوند- مشر- سردار- مالک- بادشاه- سرپرست- جمع واليان- (م- عربی)-

والي:(وا-لي)اسم- واحد جمع- مؤنث- د زنانو کالے چې غوږونو ته اچولے شي- (م- هندی- بالی)-

والے:(وا-لے)لاحقه- د نسبت کلمه،علامت- لکه لوړوالے- سپين والے-

وام:(وام)اسم- واحد- مذکر- (۱)پور- قرض- (۲)د غر اباده حصه چې پکښې د اُبو چينې او ونې بوټي وی- سپين وام- (۳)الوږ کردار- دنګ- (م- فارسی)-

ی (خی-رل)، ي (مي-ره-ول)، ې (پيا-لي)، ۍ (تن-دې) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

وام:(وام)اسم- دَ وهم عامیانه قرأت- زیره- وهم-
وان:(وانْ)لاحقه- هغه لاحقه چې دَ اسم نه پس راشي نو فاعلي معنیٰ پیدا کوي- لکه جاله وان-
وانج:(وانج)اسم- مسور-
وانجو:(وانْ-جو)اسم- واحد- مذکر- توره دانه- سیاه دانه- کلونجي-
وانڅه:(وانْ-څه)اسم- واحد- مؤنث- داغ-
واند:(وانْد)اسم- واحد- مذکر- خیال- گومان- شک- اندازه-
وانډ:(وانډ)اسم- واحد- مذکر- خنګل-
وانډه:(وانْ-ډه)اسم- واحد- مؤنث- بانډه- کوڅه- وړوکے کلے- جمع وانډې-
وانړل:(وانْ-ړل)مصدر- (۱)روړې وېستل- پهٔ سپېمه سپې پسې دَ سپې مخصوص اواز وېستل- (۲)دَ سپې ژړا کول-
وانړنه:(وانْ-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وانړل-
وانړه:(وانْ-ړهٔ)اسم- واحد- مؤنث- دَ سپې ړوړه- جمع وانړې-
وانګ:(وانْګ)اسم- واحد- مذکر- انار- جمع وانګونه- نباتاتي نوم پونیکا ګرانېټم (PUNICA GRANATUM)-
وانګړ:(وانْګ-ګړ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ اننګ-
وانمڅه:(وانْ-مهٔ-څه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وادهٔ سامان- جمع وانمڅې-
واڼ:(واڼ)اسم- غنم اُرونه- مېده کونه-
واڼل:(وا-ڼل)مصدر متعدي- وړل- (لکه خړانل- خوړل)اوړول- مېده کول-
واڼه:(وا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- غوبل شوې غله چې بوسو سره یو ځایٔ وي- جمع واڼې-
واني:(وا-ني)اسم- واحد- مؤنث- دَ پښو اعصاب-
واڼې واڼې:(وا-ڼې-وا-ڼې)صفت- ټوټې ټوټې- څېر څېر- ټوټې ټوټې- پوټې پوټې-
واو:(واو)تلفظ- دَ "و" حرف تلفظ-
واوا:(وا-وا)دَ شاباش کلمه- پاړاګیرنه کونه- ډېر ښهٔ- شاباش-
واوا:(وا-وا)صفت- ښکلے څیز- (دَ ماشومانو پهٔ ژبه)-
واوړل:(واو-ړل)مصدر متعدي- اُبدل- ادل- مودل-
واور:(وا-ور)اسم- مذکر- یو مردار خور مارغهٔ-
واوره:(واو-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ هوائي بخاراتو منجمد شکل چې لهٔ بره وریږي- (۲)پهٔ مصنوعي طریقه دَ اُبو منجمد شکل-
واورین:(واو-رین)صفت- یخ- دَ واورې سره متعلق- وګورئ واوره-
واویلا:(وا-وي-لا)اسم- ژړا- فریاد- چیغې سورې- ماتم- شور فریاد- آه فغان- (م- فارسي)-
واه:(واه)اسم صوت- دَ خوشحالۍ آواز چې دَ خوشحالۍ پهٔ وخت دَ خلې نه وځي-
واهب:(وا-هب)اسم صفت- دَ الله تعالیٰ یو صفتي نوم- حاجت پوره کونکے- بخښونکے- ورکونکے (م- عربي)-
واهمه:(وا-ه-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ تصور هغه زور چې احساسات پېدا کوي- دَ تخیل قوت- (م- عربي)-
واهي:(وا-هي)اسم صفت- فضول- بې فائدې- کمزورے- ناراسته- (م- عربي)-
واهیات:(وا-هي-یات)اسم- دَ واهي جمع- بکواس- فضول خبرې- (م- عربي)-
وائي:(وا-ئي)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ وئیل نه امر- (۲)دَ خلقو دَ خلې خبره- داسې خبره چې پهٔ خلقو کښې شهرت بیاموسي- شهره- اوازه- (اصل هوائي)-
وایل:(وا-یل)مصدر- دَ وئیل بل قرات-
وائینګرے:(وا-ین-ګهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- دَ زمکې ناپونکے- دَ زمکې کچ کونکے-
وایه:(وا-یه)اسم- واحد- مؤنث- حیا- شرم- پرده-
وایه:(وا-یه)اسم- واحد- مؤنث- مفید څیز- (۲)غښتنه- (م- فارسي)-
وایه من:(وا-یه-من)اسم صفت- حیاناک- شرمناک- (م- عربي)-
وائېسېدل:(وا-ېِ-سې-دل)مصدر- ایسېدل- ښکارېدل- معلومېدل- څرګندېدل-
وایٔ وایٔ:(وایٔ-وایٔ)اسم صوت- فریاد- دَ فریاد چغې-
وائے:(وا-ئے)کلمه- دَ افسوس کولو اظهار- فریاد-
وبا:(و-با)اسم- واحد- مؤنث- (۱)مرګو- خورېدونکې مهلکه بیماري- (م- عربي)-
وبال:(وو-بال)اسم- (۱)عذاب- مصیبت- آفت- ګناه- (۲)بوج- بار- (م- عربي)-
وبائي:(و-با-ئي)متعلق فعل- دَ وبا سره متعلق مرضونه- وګورئ وبا- (م- عربي)-
وبدونکے:(وب-دون-کے)اسم- واحد- مذکر- جولا- جمع وبدونکي-
وبره:(وب-ره)حرف تشبیه- لکه- پهٔ شان- پهٔ رنګ- څنګه-
وبلن:(وب-لن)اسم صفت- نوژن- نم ژن- نو لرونکے-
وبلول:(وب-له-ول)مصدر- شربل- شاربل- لهٔ مستو شوملې جوړول-
وبلون:(وب-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ وبلول-
وبلونکے:(وب-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وبلونکي- مؤنث وبلونکې- وګورئ وبلول-
وبلونه:(وب-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وبلول-
وبله:(وب-له)متعلق فعل- یو تر بله- خپلو کښې- دَ یو بله- پهٔ یو بل-
وبله:(وب-له)اسم- (۱)ګډا- (۲)چاره-
وبنه:(وب-نه)اسم صفت- خودسره- نامنونکے-
وپار:(و-پار)اسم- واحد- مذکر- لین دین- کاروبار- ونج- بېپار- رابطه- رغا- تجارتي معامله- تجارتي اعتبار- دَ بیوپار مُخفف- دَ خریدو فروخت معامله- سوداګري- بے پار- لاګي- راکړه- (کول مصدر)-
وپاري:(و-پا-ري)اسم- واحد- مذکر- سوداګر- لین دین کونکے-
وپره:(وپ-ره)اسم- واحد- مؤنث- (۱)بوره بوره- نرمه نرمه- (۲)ارګجه-

ناجانه- ناواقف- وګورئ اوپره-

وَت:(وَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)درز- وړوکے سورے- کنده- رو- (۲)لري والے- (۳)پلن والے- فراخي- جمع وتونه-

وتد:(وَ-تد)اسم- (۱)میخ- چوکه- (۲)دَ علم عروض پهٔ اصطلاح کښې درې حرفي کلمه-

وتر:(وَ-تر)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ قائم الزاویه مثلث لهٔ ټولو لویه ضلع- (۲)دَ مثلث دَ یوې زاویې مخامخ ضلع- (۳)هغه خط چې دَ ځلورو ضلعو مخالف ګټونه یو ځایَ کړي- (۴)هغه خط چې دَ دائرې څهٔ حصه را ګېره کړي او قطر نه وړه وي- (۵)دَ غشي لیندهٔ- جمع وترونه- (م- عربي)-

وتر:(وَ-تر)اسم- واحد- مذکر- هغه درې رکعته مونځ چې دَ نماستخن نمانځهٔ کښې لهٔ فرضو او سنتو نه پس کولے شي- (م- عربي)-

وتر:(وَ-تر)اسم- واحد- مذکر- وتره- دَ ابهٔ خور نه پس دَ زمکې هغه حالت چې دَ یوې کولو قابل وي- لوندوالے-

وتره:(وَت-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وتر-

وتري:(وَت-ري)اسم- جمع- مذکر/مؤنث- واحد وتر- لوښي لرګي- لوښي کودي- دَ کور سامان- ساز و سامان-

وتزن:(وَت-زن)اسم صفت- واحد- مذکر- سورے کونکے- پېوندونکے-

وتکے:(وَت-کے)اسم تصغیر- وتګے- وړوکے وت- وړوکے سورے- جمع وتکي-

وتګے:(وَت-ګے)اسم تصغیر- جمع وتګي- وګورئ وتکے-

وتل:(وه-تل)مصدر- خارجېدل- بهر وتل- ظاهرېدل- بهر ته تلل- بندېدل- کښېوتل- پروا لرل- علاقه لرل- مینه لرل- رسېدل- ښکاره کېدل-

وتلے:(وَ-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع وتلي- مؤنث وتلې- وګورئ وتل-

وتن:(وَ-تن)حاصل مصدر- وګورئ وتل-

وتنګ:(وَ-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ وتل-

وتنه:(وَ-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وتل-

وتون:(وَ-تون)اسم- دَ وتل مصدر نه اسم- وګورئ وتل-

وتونکے:(وَ-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وتونکي- مؤنث وتونکې- وګورئ وتل-

وتے:(وهٔ-تے)صفت- وتلے- نمایان- وچت- رسېدلے- وګورئ وتل-

وټ:(وَټ)اسم- واحد- مذکر- عیب- نقص- اعتراض- شک- نقصان-

وټ:(وَټ)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ تازه ربېلي شوې فصل زمکه- (۲)هغه ځایَ چې ګنې پکښې سپینولے شي- جمع وټونه-

وټامن:(وَ-ټا-مِن)اسم- واحد- مذکر- حیاتین- هغه کیمیائي طاقت چې پهٔ انساني خوراک کښې موجود وي او بدن ته طاقت ورکوي- (م- انګریزي)-

وټک:(وَ-ټک)اسم- واحد- مذکر- ګټه وټه- آمدن- دَ سودا یا دُکانداری دَ مال و خرڅ ګټه- دَ ورځې آمدني-

وټ کټ:(وَټ-کټ)اسم- واحد- مذکر- ودکټ- وړکټ- کمے زیاتے-

وټکے:(وَټ-کے)اسم- واحد- مذکر- وُچت ځایَ- دَ کوټې پهٔ چت کښې دَ لوګي دَ وتلو موری- جمع وټکي-

وټنبوڼے:(وَ-ټن-بو-ڼے)اسم- واحد- مذکر- ګټندوڼے- ګټه کونکے-

وټني:(وَټ-ني)اسم- واحد- مؤنث- هغه خوراک چې دَ یوې جینۍ دَ وادهٔ په موقع دَ هغې سوېلو له دَ هغې دَ مور له خوا ورکولے شي- دغه خوراک عموماً دَ وریژو او غوړو وي-

وټه:(وَ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- ګټه- همېشه دَ ګټې سره راځي لکه ګټه وټه-

وټه:(وَ-ټه)اسم- واحد- مذکر- عیب- نقص-

وټے:(وَ-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ نهر یا ولې وچته حصه چې لاندې ترې دَ ژرندې ناوه لګېدلې وي-

وټے:(وَ-ټے)اسم- واحد- مذکر- دَ وربښمو ګل چې دَ سینګار دَ پاره جوړولے شي-

وټے:(وَ-ټے)دَ تصغیر لاحقه چې دَ ځنې نومونو پهٔ آخر کښې راځي- لکه کمکوټے وغېره-

وثن:(وَ-ثن)اسم- واحد- مذکر- (۱)بُت- (۲)معشوقه-

وثوق:(وُ-ثوق)اسم- واحد- مذکر- مضبوطیا- اعتماد- (م- عربي)

وثیقه:(وَ-ثي-قه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)اقرارنامه- دستاوېز- سَند- وعده- (م- عربي)-

وثیقه نویس:(وَ-ثي-قه-نه-ویس)اسم- واحد- مذکر- اقرارنامه لیکونکے-

وج:(وَج)اسم- واحد- مذکر- چپه- هغه لرګے چې کشتي پرې دیکه کولے شي- جمع وجونه-

وجاړ:(وَ-جاړ)اسم صفت- ویجاړ- وران-

وجاړه:(وَ-جا-ړه)اسم صفت- واحد- مؤنث- ویجاړه- ورانه-

وجاهت:(وَ-جا-هت)اسم- واحد- مذکر- عزت- رعب- لوئي- (م- عربي)-

وجب:(وَ-جب)اسم- لوېشت- لېشت- (م- فارسي)-

وجد:(وَ-جد)اسم- واحد- مذکر- شوق- جذبه- بې خودي- بېره خوشحالي- (م- عربي)-

وجدان:(وَج-دان)اسم- واحد- مذکر- دَ دریافت او پوهې ذوق سلیم چې یو قلبي قوت دے- (م- عربي)-

وجداني:(وَج-دا-ني)اسم صفت- وجدان او باطني حواسو سره تعلق لرونکے- (م- عربي)-

وجدوحال:(وَ-جد-و-حال)اسم- هغه حالت چې کله کله پهٔ صوفیانو دَ شوق و ذوق پهٔ وجه خوریږي- هغه حالت چې دَ خدائ تعالی دَ یاد پهٔ وجه پهٔ زړهٔ باندې راځي او انسان بې خوده کوي- (م- عربي)-

وجع:(وَ-جع)اسم- واحد- تکلیف- درد- (م- عربي)-

وجود:(وُ-جود)اسم- واحد- مذکر- (۱)بدن- تن- حیات- (۲)هستي- (۳)موندلے کېدنه- جمع وجودونه- (م- عربي)-

وجه:(وَج-هه)اسم- واحد- مؤنث- څېره- مخ- رخسار- (م- عربي)-

ئ" (څې-رل)، ي"(هې-ره-ول)، ې"(پیا-لې)، ے"(تن-دے) تفصیل دَ پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

وجه:(وَ-جه)اسم- واحد- مؤنث- سبب- سوب-

وجه تسمیه:(وَج-هَ-تَس-مي-يه)اسم- واحد- مؤنث- دَ نوم ایښودو سبب- (م- عربی)-

وجیز:(وَ-جیز)اسم صفت- لړ- لنډ- مختصر- (م- عربی)-

وجیهٔ:(وَ-جیه)اسم صفت- ښائسته- دَ شکل او صورت ښهٔ- (م- عربی)-

وُچ:(وُچ)اسم صفت- خشک- دَ لوند ضد- شنډ-

وچاړ:(وهٔ-چاړ)اسم- واحد- مذکر- ابره- هغه ابره چې بږستن/تولاني ته اچولے شي- جمع وچاړونه-

وچ اودس:(وُچ-او-دس)اسم- تیبون- تیمم-

وچ پوچ:(وُچ-پوچ)اسم صفت- بې موده- ناکاره-

وچ پهٔ مچه:(وُچ-پهٔ-م-چه)متعلق فعل- برناحقه- بې ښې بې بدې- مېخ بې مېخه- وچ پهٔ وچه- چتی پتی-

وچ پهٔ وچه:(وُچ-پهٔ-وهٔ-چه)متعلق فعل- وګورئ وچ پهٔ مچه-

وچت:(وَ-چت)اسم صفت- بره- پورته- لوړ- اوچت-

وچتوالے:(وَ-چت-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- اوچتوالے- بره والے- لهٔ عامې سطحې پورته کېدنه-

وچتوب:(وَچ-توب)اسم- دَ وچېدو حالت- وچوالے-

وچتول:(وُ-چه-ته-وَل)مصدر- اوچتول- بره کول- لهٔ یو ځایٔ نه بل ځایٔ ته کول-

وچتون:(وُ-چه-ته-وَن)حاصل مصدر- وګورئ وچتول-

وچتونکے:(وُ-چه-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وچتونکی- مؤنث وچتونکې- وګورئ وچتول-

وچتونګ:(وُ-چه-ته-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وچتول-

وچتونه:(وُ-چه-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وچتول-

وچتې:(وُ-چه-تې)اسم- جمع- مؤنث- لویٔ لویٔ خبرې- وړیانی-

وچتېدل:(وُ-چه-تې-دَل)مصدر لازم- بره کېدل- پاڅېدل- پورته کېدل- یو ځایٔ پاڅېدل- ترقی کول- وده کول-

وُچ ړاګ:(وُچ-ړاګ)اسم صفت- واحد- مذکر- سوزونکے دشت- سوراړ- سوراړا- بیتی بیدیا- تشه ړاګه- خشکه صحرا- بیابان- جمع وچ ړاګونه-

وچړ:(وَ-چړ)اسم- واحد- مذکر- دَ غوښې یو قسم-

وچ سترګے:(وُچ-ستر-ګے)اسم صفت- بې حیا- بې شرم-

وچ غاړے:(وُچ-غا-ړے)اسم صفت- وچه مرئ لرونکے- نرے- مانده-

وچکال:(وُچ-کال)اسم- واحد- مذکر- سوکړه- هغه کال چې بارانونه پکښې نهٔ وي وریدلي-

وچکالي:(وُچ-کا-لي)اسم- سوکړه- (۱)دَ فصل ښهٔ نهٔ کېدنه- (۲)قحط-

وچکالے:(وُچ-کا-لے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ سوکړې کال- (۲)قحط-

وچ کړس:(وُچ-کړس)اسم صفت- ډېر وُچ- کسکر- بالکل وچ- ډېر نرے- ډېر مانده-

وچکل:(وُچ-کل)اسم- واحد- مذکر- (۱)الم نهٔ لرونکے کډورے- (۲)دَ یو کال وزے- (۲)- مؤنث- هغه کډه چې بچے نهٔ راوړی- شنډه کډه-

وچکلک:(وُچ-کلک)اسم صفت- نرے نروچکے- کمزورے-

وُچ کلکتوب:(وُچ-کلک-توب)اسم- ډنګرتوب-

وچکولے:(وُچ-کو-لے)اسم- واحد- مذکر- وچې شوې- جمع وچکولی-

وچکه:(وُ-چه-که)اسم- واحد- مؤنث- وچکی- خشکی- ټاپو- جزیره- چکی-

وچکه غل:(وُ-چه-که-غل)اسم- واحد- مذکر- کڼ کپ- کټکپ-

وچکی:(وُ-چ-کي)اسم- واحد- مؤنث- میعادی تبه- لویه تبه- (۲)خوراکی- نری نروچکې- نری پېری- وچه کلکه-

وُچکے:(وُ-چ-کے)اسم صفت- واحد- مذکر- خوراکي- نرے نروچکے- نرے پرے- وچ کلک- ریږړ- وُچ- نرے- پهٔ بدن وُچ- مؤنث وچکی-

وچ لامدهٔ:(وُچ-لام-دهٔ)اسم صفت- (۱)وچ او لامدهٔ- (۲)دَ ښېګړې- ټول- ګناه کار او بې ګناه-

وچ لاوندهٔ:(وُچ-لاوَن-دهٔ)اسم صفت- وګورئ وچ لامدهٔ-

وچ لینګے:(وُچ-لینګ-ګے)اسم صفت- کمزورے- مانده- جمع وچ لینګی-

وچمورے:(وُچ-مو-رے)اسم- واحد- مذکر- هغه ماشوم چې دَ مور پیٔ یې وچ شوی وی-

وچن:(وُ-چن)اسم صفت- شنډ- لهٔ اولاده محروم- مؤنث وچنه- جمع مؤنث وچنې-

وچوب:(وُ-چوب)اسم- پهٔ لښتی کښې اُبهٔ بندېدنه- دَ اُبو کمے- اُبهٔ کمېدنه- وچوبے- وچوبه-

وچوبه:(وُ-چو-به)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وُچوب-

وُچوبے:(وُ-چو-بے)اسم- واحد- مذکر- جمع وچوبی- وګورئ وچوب-

وچ پوچ:(وُچ-پوچ)اسم صفت- عبث خبره- بکواس-

وچوړ:(وُ-چوړ)اسم- وچوالے- وچتوب-

وچ وچکے:(وُچ-وُ-چ-کے)اسم صفت- وچ کمزورے-

وچوکے:(وُ-چو-کے)اسم صفت- وچ کړس- کمزورے-

وچول:(وُ-چه-وَل)مصدر- لهٔ څهٔ څیز نه نم وېستل- بې اُبو کول-

وچولے:(وُ-چو-لے)اسم- واحد- مذکر- تندے- ټنډه- جمع وچولی-

وچون:(وُ-چه-وَن)حاصل مصدر- وګورئ وچول-

وچونکے:(وُ-چه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وچونکی- مؤنث وچونکې- وګورئ وچول-

وچونګ:(وُ-چه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وچول-

وچونه:(وُ-چه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وچول-

وچونے:(وُ-چه-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- هغه بیماری چې وجود پکښې وچ وچ کیږی- جمع وچونی-

وچه:(وُ-چه)اسم صفت- واحد- مؤنث- (۱)للمه- خُشکه- دَ لوندې ضد- (۲)دَ لنګې ضد- (۲)دَ بلاربې ضد-

زبر "(خ-بهٔ-ره)، زورکے "(شل)، پېش "(نو-کا-ره)، زېر "(ک-تاب)، جزم "(شکوڼ)، ه "(ز-ره)، هٔ "(ډو-بې-دهٔ)

وچه سپوره:(و-چه-سپو-ره)اسم- واحد- مؤنث- بیخي سپوره- سپوره ستغه-

وچه غاړه:(و-چه-غا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- حلق- ستونے- د ساه د اخستو نالی-

وچه لاونده:(و-چه-لاون-ده)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وچه لمده-

وچه لمده:(و-چه-لم-ده)اسم- واحد- مؤنث- کوره ګل- غوره ګل-

وچې پوچې:(و-چې-پو-چې)اسم- عبث- بې فائدې- بکواس-

وچېدل:(و-چې-دل)مصدر لازم- (۱)د نم بیخی ختمېدل- اُبۀ ختمېدل- (۲)مانده کېدل-

وچېدن:(و-چې-دن)حاصل مصدر- وګورئ وچېدل-

وچېدنګ:(و-چې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ وچېدل-

وچېدنه:(و-چې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وچېدل-

وچېدونکے:(و-چې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وچېدونکی- مؤنث وچېدونکې- وګورئ وچېدل-

وچېدۀ:(و-چې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ وچېدل-

وچې سپورې:(و-چې-سپو-رې)اسم مرکب- جمع- مؤنث- (۱)سپورې ستغې- بیخی وچې- وچې کلکې- اړولې خبرې- (۲)بې نګولې- بیخی وچې- چې هیڅ پورې نۀ وی-

وچې کانګې:(و-چې-کانګ-ګې)اسم- وچ قے- وچې الټې-

وښکه:(وښ-که)اسم- واحد- مؤنث- مېوه- وچ کړی انګور-

وښکېز:(وښ-کېز)اسم- واحد- مذکر- ښکېز- سدام- کمچه- د خېمې ستن-

وحدانی:(وح-دا-نی)صفت- د واحد سره متعلق- تنها- ځانله-

وحدانیت:(وح-دا-نی-یت)اسم- واحد- مذکر- توحید- یووالے- یو کېدنه-

وحدت:(وح-دت)اسم- واحد- مذکر- د کثرت ضد- اتفاق- یووالے-

وحشت:(وح-شت)اسم- واحد- مذکر- جنون- سودا- خفګان- لېونتوب- لۀ تنهائۍ پېدا کېدونکے غم او زړۀ تنګی- (م- عربی)-

وحشتناک:(وح-شت-ناک)اسم صفت- ویرونکے- (م- عربی)-

وحشی:(وح-شی)صفت- ځنګلی- غېرمهذب- (م- عربی)-

وحشیانه:(وح-شی-یا-نه)متعلق فعل/صفت- د وحشی سره متعلق- وګورئ وحشی- (م- عربی)-

وحید:(و-حید)اسم صفت- یو- بې مثال- لاثانی- د الله تعالی یو صفتی نوم- (م- عربی)-

وحې:(و-حې)اسم- جمع- مؤنث- پېغمبرانو سره د خدائې پاک کلام- اشاره- الهام- (م- عربی)-

وخ:(وخ)کلمه- د غم یا ښادۍ په موقع استعمالولے شی- اَخ-

وخت:(وخت)اسم- واحد- مذکر- زمانه- دور- ساعت- ترنګ- جمع وختونه-

وخت تېرے:(وخت-تے-رے)اسم- ساعت تېرے- وخت تېرونه- ګزران کونه- ګپ شپ-

وخت ناوخته:(وخت-نا-وخ-ته)اسم مرکب- وخت بې وخته- هر ساعت- غوره تپه- چې وخت او بې وخته ئې معلوم نۀ وی-

وختی:(وخ-تی)صفت/متعلق فعل- دوخته- ډېر مخکښې- سحر- وړومبے-

وختیز:(وخ-تیز)متعلق فعل- د وخت سره تړلے- د وخت سره متعلق-

وختینی:(وخ-تی-نی)صفت- مؤنث- د وختینے مؤنث- وګورئ وختینے-

وختینے:(وخ-تی-نے)صفت- مذکر- وختی- د وړومبی وخت-

وخچه:(وخ-چه)اسم- واحد- مؤنث- کوته- ژوره- ړونګی-

وخله:(وخ-له)کلمه- د خېرانتیاو خوشحالی کلمه-

وداد:(و-داد)اسم- دوستی- محبت- مینه-

وداری:(و-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- باداری-

وداع:(و-داع)اسم- رخصت- روانګی- د ناوې رخصتی-

ودان:(و-دان)صفت- اباد- جوړ شوے- د وران ضد-

ودانښت:(و-دا-نښت)اسم- واحد- مذکر- ابادی جوړونه-

ودانول:(و-دا-نه-ول)مصدر متعدی- جوړول- ابادول-

ودانون:(و-دا-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ودانول-

ودانونکے:(و-دا-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ودانونکی- مؤنث ودانونکې- وګورئ ودانول-

ودانونګ:(و-دا-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ودانول-

ودانونه:(و-دا-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ودانول-

ودانه:(و-دا-نه)صفت- (۱)آباده- (۲)اولاد لرونکې ښځه- نېکمرغه ښځه- جمع ودانې-

ودانی:(و-دا-نی)اسم- واحد- مؤنث- ابادی- عمارت- تعمیر-

ودانېدل:(و-دا-نې-دل)مصدر لازم- (۱)جوړېدل- اَبادېدل- (۲)صاحب اولاد کېدل-

ودانېدن:(و-دا-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ودانېدل-

ودانېدنګ:(و-دا-نې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ودانېدل-

ودانېدنه:(و-دا-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ودانېدل-

ودانېدونکے:(و-دا-نې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ودانېدونکی- مؤنث ودانېدونکې- وګورئ ودانېدل-

ودانېدۀ:(و-دا-نې-دۀ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ ودانېدل-

ودرول:(ود-ره-ول)مصدر متعدی- قائمول- ولاړول- ایسارول- درول-

ودرولے:(ود-ره-وۀ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ودرول-

ودرون:(ود-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ ودرول-

ودرونکے:(ود-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ودرونکی- مؤنث ودرونکې- وګورئ ودرول-

ودرونګ:(ود-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ودرول-

ودرونه:(ود-ره-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ودرول-

"ی" (ښی-رل)، "ې"(مې-ره-ول)، "ئ"(پېا-لې)، "ے"(تن-دے) تفصیل د پاره وګورئ تشریحات صفحه ۱

ودرېدل:(وُد-رې-دَل)مصدر لازم- ایسارېدل- قائمېدل- درېدل-

ودرېدلے:(وُد-رې-دَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع وُدرېدلی- مؤنث وُدرېدلې- وګورئ ودرېدل-

ودرېدن:(وُد-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ودرېدل-

ودرېدنګ:(وُد-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وُدرېدل-

ودرېدنه:(وُد-رې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ودرېدل-

ودرېدونکے:(وُد-رې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وُدرېدونکی- مؤنث وُدرېدونکې- وګورئ وُدرېدل-

ودرېدهٔ:(وُد-رې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ وُدرېدل-

ودکټ:(وَد-کټ)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وړکټ-

ودکنے:(وَد-کَه-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وادکنے-

ودل:(وُ-دَل)مصدر متعدی- وُبدل- وربشل- جوړول- اوبدل-

ودلے:(وُ-دَه-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ وُدل-

ودن:(وُ-دَن)حاصل مصدر- وګورئ وُدل-

ودنګ:(وُ-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وُدل-

ودنه:(وُ-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ وُدل-

ودونکے:(وُ-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ودل-

ودنے:(وُ-دَه-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وندنے- جمع ودنی-

ودود:(وَ-دُود)اسم صفت- دوست- غښتونکے- مهربان- دَ الله تعالی یو صفتي نوم- (م- عربی)-

ودوړے:(وَ-دو-ړے)اسم صفت- بادوړے- سست- هغه چې څهٔ ته ټینګ نهٔ وی-

ودول:(وَ-ده-وَل)مصدر متعدی- نکاح کول- کوروداني جوړول-

ودون:(وَ-ده-وَن)حاصل مصدر- وګورئ ودول-

ودونکے:(وَ-ده-وُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ودونکی- مؤنث ودونکې- وګورئ ودول-

ودونګ:(وَ-ده-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ودول-

ودونه:(وَ-ده-وَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ودول-

وده:(وُ-ده)اسم- واحد- مؤنث- ترقی- بنېرازی- لوئېدنه- جمع ودې-

وده:(وَ-ده)اسم- واحد- مؤنث- دَ دم اجازه- جمع ودې-

ودېدل:(وَ-دې-دَل)مصدر لازم- وادهٔ کېدل- دَ ښځې پهٔ نکاح کېدل-

ودېدن:(وَ-دې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ ودېدل-

ودېدنګ:(وَ-دې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ودېدل-

ودېدنه:(وَ-دې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ ودېدل-

ودېدونکے:(وَ-دې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ودېدونکی- مؤنث ودېدونکې- وګورئ ودېدل-

ودېدهٔ:(وَ-دې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ودېدل-

وړ:(وړ)اسم- واحد- مذکر- واټ- وبشکے- وټ- دَ زمکې لویه ټکړه-

وړ:(وړ)تابع مهمل- دَ کړ تابع مهمل لکه کړوړ-

وړ:(وړ)اسم صفت- لوئ- غټ-

وړکټ:(وړ-کټ)اسم- کمے زیاتے- وګورئ وتکټ-

وړیائي:(وړ-یا-ئي)اسم- مؤنث- بړائي- لوئي- تکبر- غرور-

ور:(ور)اسم- واحد- مذکر- دروازه- تمبه- جمع وروُنه-

ور:(ور)سابقه- دَ غائب دَ طرف دَ پاره پکارونکے حرف لکه ورتلل- وررسېدل وغېره-

ور:(ور)لاحقه- چې دَ ځنې اسمونو پهٔ اخر کښې راتلو سره دَ فاعل معنی ورکوی لکه زړور- بختور وغېره-

ورا:(وَ-را/وَرا)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ ښځو ګڼه چې دَ وادهٔ پهٔ موقع دَ ناوې کور ته ځی او بیا دَ ناوې دَ ډولۍ سره راځی- جمع وراګانې- (۲)وادهٔ-

ورا:(وَ-را)متعلق فعل/صفت- وګورئ ماورئ-

وراباڼ:(وَرا-باڼ)اسم- واحد- مذکر- دَ وادهٔ پهٔ جنج کښې شریک سړے- جنجی-

ورابانې:(وَرا-با-نې)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ وَرا کښې تلونکې ښځې-

ورابند:(وَرا-بند)اسم- واحد- مذکر- دَ بار دَ تړلو رسی-

ورابنے:(وَرا-به-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ اُوښ دَ کټې لرګے- جمع ورابنی-

وراتل:(وَرا-تَل)مصدر- اوړاتل- دنګل- پاڅېدل- منډه کول- ځغلېدل- الوتل-

وراتنه:(وَرا-تَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ وراتل-

وراتهٔ:(وَرا-تهٔ)صفت- وریت شوی- دَ وریت جمع-

وراثت:(وِ-را-ثَت)اسم- واحد- ذکر- ترکه- مېراث- ورثه- لهٔ مړی پاتې شوے مال جائېداد- وراثه- جمع وراثتونه- (م- عربی)-

وراثه:(وِ-را-ثه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وراثت-

وراجه:(وَرا-جه)اسم- واحد- مؤنث- مارګه- دَ مرې بغوتی- جمع وراجې-

وراخه:(وَرا-خه)اسم- واحد- مؤنث-(۱)دَ سپرلی باران- (۲)دَ کتې یو قسم- جمع وراخې-

وراره:(وَرا-ره)اسم- واحد- مؤنث- زرورمړې ښځه- جمع ورارې-

وراره:(وَرا-رهٔ)اسم- واحد- مذکر- دَ ورور ځوئ-

وراژه:(وَرا-ژه)اسم- واحد- مؤنث- خنزیره- کجیر- یو قسم دانه چې پهٔ ځټ راخیژی-

وراړه:(وَرا-ړه)اسم- واحد- مؤنث- خرمن- هغه خرمن چې قصابی پرې کیږی- لهٔ خرمنې جوړ پړے- وروینه-

وراستهٔ:(وَراس-تهٔ)اسم صفت- جمع- مذکر- وګورئ وروست-

وراسه:(وَ-را-سه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ژغېدنه- جمع وراسې- (۲)وګورئ وراثه-

وراشکی:(وراش-کی)اسم- واحد- مؤنث- دَ توری پټی-

وراشه:(وَ-را-شه)اسم- واحد- مؤنث- بيان- خبرې اترې- ژبه- مهارت-

وراغ:(وَ-راغ)اسم- واحد- مذکر- کارګه- کاغه- کارغې- کاغ- کارغۀ-

وراګړے:(ورا-ګۀ-ړے)اسم- واحد- مذکر- پۀ ورا تلونکے- جنجې- جمع وراګړی-

وران:(وَران)اسم صفت- (۱)برباد- خراب- اجاړ- ړنګ- ويجاړ- خراب شوے- (۲)ورانے کونکے- ذليل- شرير- شيطان- وګورئ ورانکارے-

ورانښت:(ورا-نښت)اسم- واحد- مذکر- ورانے- بدی- دشمنی- برخلافی-

ورانکارے:(وَران-کا-رے)اسم صفت- شرير- فسادی- خراب کارونه کوُنکے- نقصانی- شيطان- ورانے کوُنکے- جمع ورانکاری-

ورانګه:(وَرانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دَ لرګی سره پړی له وَل ورکونه- جمع ورانګې-

ورانوالے:(وَران-وا-لے)اسم- دَ ورانېدو حالت-

وران وجاړ:(وَران-وَ-جاړ)اسم صفت- خراب تراب- تالا ترغه- ويجاړ شوے- وران وران- وران ويجاړ-

وران وران:(وَران-وَران)اسم صفت- وګورئ وران ويجاړ-

ورانول:(وَرا-نه-ول)مصدر متعدی- ختمول- ويجاړول- ويرانول- دَ کار نه ويستل- پۀ بل مخ اړول- تباه کول- بربادول- ويجاړول- خرابول- ړنګول-

ورانون:(وَرا-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورانول-

ورانونکے:(وَرا-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورانونکی- مؤنث ورانونکې- وګورئ ورانول-

ورانګونګ:(وَرا-نه-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورانول-

ورانونه:(وَرا-نه-وۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورانول-

ورانه:(وَرا-نه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دښمنی- دشمنی- مخالفت- بدی- (۲)دَ وران مؤنث- وګورئ وران-

ورانه ودانه:(وَرا-نه- وَ-دا-نه)اسم- واحد- مؤنث- نېکی بدی- ښۀ بده- جوړه ناجوړه- جمع ورانې ودانې-

وران ويجاړ:(وَران-وی-جاړ)صفت- وګورئ وران وجاړ-

ورانه ويجاړه:(وَرا-نه-وی-جا-ړه)صفت- واحد- مؤنث- تالا ترغه- جمع ورانې ويجاړې-

ورانېدل:(وَرا-نې-دَل)مصدر لازم- لۀ کاره وتل- خرابېدل- دښمنی جوړېدل-

ورانېدن:(وَرا-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورانېدل-

ورانېدنګ:(وَرا-نې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورانېدل-

ورانېدنه:(وَرا-نې-دۀ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورانېدل-

ورانېدونکے:(وَرا-نې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورانېدونکی- مؤنث ورانېدونکې- وګورئ ورانېدل-

ورانېدۀ:(وَرا-نې-دۀ)حاصل مصدر از دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ورانېدل-

ورانے:(وَرا-نے)اسم- خرابے- دښمنی- پتنه- فتنه- نقصان- اړيته- خميته- جمع ورانی-

ورايه:(وَرا-يه)صفت/متعلق فعل- لۀ لرې- پۀ فاصله- دَ لۀ حرف جار سره استعماليږی-

ورباندې:(وَر-بان-دې)حرف جار- پۀ هغۀ باندې- پۀ هغې باندې- دَ باندې سره دَ ور دَ غائبانه لاحقې نه جوړ توړے-

وربخلۀ:(ور-به-خلۀ)اسم- واحد- مؤنث- اوربخوله- پېنځه- پاينځه-

وربشه:(وُر-بۀ-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)يو قسم غله- اوربشه- اربشه نباتاتی نوم هارډيم ولګېر (HORDELM VULGARE)- (۲)عمر- روزی- (دَ ژوند سره پۀ استعمال)جمع وربشې-

وربشه:(وُر-بۀ-شه)اسم- واحد- مؤنث- دَ پګړ مياشت-

وربشينه:(وُر-بۀ-شي-نه)اسم- واحد- مؤنث- روټه دَ اُربشونه جوړه روټۍ چې دَ اُربشو دَ اوړو نه جوړه وی- جمع وربشينې-

وربل:(وُر-بَل)اسم- مذکر- ټيکه- کالے- دَ پېغلې پۀ تندی وېښتۀ- بندکے- اوربل-

وربلې:(ور-به-لې)اسم- جمع- مؤنث- تنګې پينځې چې جينکی يې پۀ جامو جوړوی-

وربنګ وهل:(ور-بنګ-وَ-هل)مصدر ترکيبی- ټک وهل- ټنګ وهل- ويشتل- وربېسې منډه کول-

وربوز:(وُر-بوز)اسم- واحد- مذکر- دَ خناو، خُله- دَ انسان مخ- مخ- شکل- خُله- موشاده- مُشاده- جمع وربوزی-

وربوزے:(وُر-بو-زے)اسم- واحد- مذکر- دَ دروازې غلام- جمع وربوزی-

وربويه:(ور-بو-يه)اسم- واحد- مؤنث- نهری زمکه چې اُبۀ لری- کلی سره نژدې زمکه-

وربونے:(ور-بو-نے)اسم- واحد- مذکر- غولے- انګړ-

وربه:(وَر-به)اسم- واحد- مذکر- دربان- ورساتے-

وربه ګان:(ور-به-ګان)اسم- مذکر- دَ وربه جمع- څوکيداران- غاړچيان- ورساتی-

وربيز:(ور-بيز)اسم- واحد- مذکر- وربوز- پوزه- اوږد مخ عموماً دَ خنازرو-

ورپسې:(ور-پۀ-سې)متعلق فعل- شا ته- وروستو-

ورپکښې:(ور-پۀ-کښې)حرف جار- (۱)ورکښې- دننه- (۲)صفت- کونی-

ورپورک:(ور-پو-رک)اسم- دروازه-

ورپورې:(ور-پو-رې)متعلق فعل- ورسره خوا کښې- پۀ وړدننه- کورناستې- لګېدلے-

ورپوکل:(ور-پو-کل)مصدر متعدی- اور ته پوکے ورکول-

ورپۀ زړۀ:(ور-پۀ-زړۀ)صفت- چا ته راياد-

ورت:(وَرت)اسم صفت- اُرت- سست-

ورت:(وَرت)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشومانو يوه لوبه-

ورتارکه:(ور-تار-که)اسم- واحد- مؤنث- مرداره دانه-

ورتړ:(ور-تړ)اسم- واحد- مذکر- دربند- دروازه بندونکے-

ورتک:(ور-تک)اسم- واحد- مذکر- وګورئ ورتلل-

ورتل:(ور-تل)مصدر- (۱)سپېنسی وربشل- تاوول- ربشل- (۲)ټوپ وهل-

ورتلل:(ور-تلل)مصدر لازم- د چا پهٔ طرف تګ کول- چا ته ځان رسول- د چا پهٔ لور تلل-

ورتلن:(ور-تلن)حاصل مصدر- وګورئ ورتلل-

ورتلنه:(ور-تلنهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورتلل-

ورتلونکے:(ور-تلون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورتلونکي- مؤنث ورتلونکې- وګورئ ورتلل-

ورتن:(ور-تن)حاصل مصدر- وګورئ ورتل-

ورتنه:(ور-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورتل-

ورتول:(وره-ته-ول)مصدر- (۱)وریتول- پهٔ اور پخول- (د خنو ځیزونو لکه غوښه وغیره- (۲)سخته ګرمي رسول-

ورتون:(وره-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورتول-

ورتونکے:(وره-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورتونکي- مؤنث ورتونکې- وګورئ ورتول-

ورتونګ:(وره-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورتول-

ورتونه:(وره-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورتول-

ورته:(ور-ته)صفت- (۱)لرې- (۲)متعلق فعل- هلته- هغه ځایٔ-

ورته:(ور-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱)وریته نینه- دانه- هغه دانه چې پوله نهٔ شي- (۲)وریته کړې غوښه- تیکه- جمع ورتې-

ورته:(ور-ته)حرف جار- بل ته- نورو ته- (د غائب صیغه کښې)-

ورته:(ور-ته)صفت- نژدې-

ورته:(ور-ته)اسم- واحد- مؤنث- سکښتې شوې ورې-

ورته:(ور-ته)اسم- ځرګند- ښکاره-

ورته والے:(ور-ته-وا-لے)اسم- د چا سره تړون لرنه- نژدې والے-

ورتینه:(ور-تي-نه)اسم- واحد- مؤنث- ارتینه- ښځه- عورته-

ورتې:(وره-تې)اسم- جمع- مؤنث- واحد- ورته- (۱)وریتې تیکې- (۲)چنې- نینې-

ورتېدل:(وره-تې-دل)مصدر لازم- (۱)پهٔ اور سوزېدل- ترقېدلے کېدل- پهٔ اور تلېدل- (۲)اذیت ورکېدل-

ورتېدن:(وره-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورتېدل-

ورتېدنګ:(وره-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورتېدل-

ورتېدنه:(وره-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورتېدل-

ورتېدونکے:(وره-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورتېدونکي- مؤنث ورتېدونکې- وګورئ ورتېدل-

ورتېدهٔ:(وره-تې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه- وګورئ ورتېدل-

ورټ:(ورټ)متعلق فعل- د ژړا سره استعمالیږي لکه ورټ يې وژړل-

ورټک وهل:(ور-ټک-و-هل)مصدر- پهٔ زور سره وردننه کول-

ورټ ورټ:(ورټ-ورټ)متعلق فعل- د مسلسل ژړا سره استعمالیږي- ژړېدنه- لکه پهٔ ورټ ورټ يې وژړل-

ورټې ورټې:(وره-ټې-وره-ټې)صفت- د مسلسلو اوښو د صفت پهٔ طور استعمالیږي- لکه ورټې ورټې اوښې يې تویې کړې-

ورثه:(ور-ثه)اسم- واحد- مؤنث- میراث- ترکه- پاتې شوے مال یا جائېداد- جمع ورثې- (م- عربي)-

ورځ:(ورځ)اسم- واحد- مذکر- د شپې ضد- د شواروز هغه حصه چې نمر پکښې وي- د میاشتې دېرشمه حصه-

ورځپاڼه:(ورځ-پا-ڼه)اسم- واحد- مؤنث- اخبار- روزنامه-

ورځ پهٔ ورځ:(ورځ-پهٔ-ورځ)متعلق فعل- هره ورځ- روزانه-

ورځ چارے:(ورځ-چا-رے)صفت- د ورځو پهٔ حساب کار کونکے-

ورځلوې:(ورځ-لوې)اسم- قیامت- لویه ورځ- د محشر ورځ-

ورځنې:(ور-ځهٔ-نې)حرف جار- د هغهٔ نه- ورنه- ترې-

ورځنے:(وره-ځه-نے)صفت- روزانه- ورځ سره منسوب-

ورخول:(ور-خه-ول)مصدر- ټوپ وهل- ورتل-

ورخونه:(ور-خه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورخول-

ورځه:(ور-ځه)امر- د ورتلل مصدر نه امر- وګورئ ورتلل-

ورخې:(ور-خې)اسم- واحد- مؤنث- وراه د ښځو جنج چې د وادهٔ پهٔ ورځ د ناوې کور ته ځي-

ورځ یوې:(ورځ-یهٔ-وې)اسم- واحد- مؤنث- چې یوه ورځ کښې قلبه کومه زمکه اروي-

ورچانې:(ور-چا-نې)متعلق فعل- بهر- لهٔ وره بهر- ورخنې- ورچنې- ورچینې-

ورچنیز:(ور-چهٔ-نیز)صفت- بهرنے-

ورچنې:(ور-چهٔ-نې)متعلق فعل- وګورئ ورچانې/ورچینې-

ورچینې:(ور-چي-نې)متعلق فعل- وګورئ ورچانې- د کور نه بهر- بهر- ورچنې-

ورڅڅول:(ور-څ-څ-ول)مصدر متعدی- (۱)غوږ کښې څڅول- غوږ ته اچول- (۲)لو لو ورکول-

ورڅخه:(ور-څ-خه)حرف جار- ورسره-

ورڅک:(ور-څک)اسم- واحد- مذکر- ورسک- وربوز- پوزه- څوکه-

ورځېرمه:(ور-ځېر-مه)صفت- نژدې- پیوست-

ورځېلمه:(ور-ځېل-مه)صفت- وګورئ ورځېرمه-

ورخ:(ورخ)اسم- واحد- مذکر- هغه ناله چې پټي ته پرې اوبهٔ تیریږي- ناکه- اوبو ته تړلے بند- د اوبهٔ خور د نښتي سربېب- اړخ- د بدن یوه پړه- طرف-

ورخاړے:(ور-خا-ړے)اسم صفت- واحد- مذكر- لاړژن-
ورخاړے:(ور-خا-ړے)اسم- واحد- مذكر- د کډو بيزو يو مرض- ارخاړے-
ورخاړے:(ور-خا-ړے)اسم- واحد- مذكر- يو ساګ چې د سلاد په طور هم استعماليږی- نباتاتی نوم پارټولېکا اولرېکا (PORTULACA OLERACCA)-
ورختل:(ور-خه-تل)مصدر متعدی- په چا حمله کول- بره ورتلل- ورؤچتېدل-
ورختلے:(ور-خه-تهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګورئ ورختل-
ورختن:(ور-خه-تن)حاصل مصدر- وګورئ ورختل-
ورختنګ:(ور-خه-تنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورختل-
ورختنه:(ور-خه-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورختل-
ورختونکے:(ور-خه-تون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع ورختونکی- مؤنث ورختونکې- وګورئ ورختل-
ورخته:(ور-خهٔ-ته)اسم- واحد- مؤنث- چېرچاړ- حمله- ورختې- وګورئ ورختې-
ورختهٔ:(ور-خه-تهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ورختل-
ورختې:(ور-خهٔ-تې)اسم- جمع- مؤنث- ورانے- مستی- په يو بل حمله- ورخته-
ورختے:(ور-خهٔ-تے)صفت- ورختلے- حمله کونکے- جمع ورختی-
ورخړل:(ور-خه-ړل)مصدر لازم- غل پرې کول-
ورخره:(ور-خه-ره)اسم- واحد- مؤنث- خخله- خشاک- لرګی- بالڼ- جمع ورخړې-
ورخطا:(ور-خ-طا)صفت- ورروان (په تېزی)- ورشتی-
ورخه:(ور-خه)اسم- واحد- مؤنث- وړه نالهٔ- جمع ورخې- وګورئ ورخ-
ورخيره:(ور-خي-ره)اسم- واحد- مؤنث- د کرکې نه ډکه خبره- جمع ورخيرې-
ورخيزه:(ور-خي-زه)اسم- واحد- مؤنث- هغه زمکه چې اُبو ته نژدې وی-
ورخيمځه:(ور-خيم-ځه)اسم- واحد- مؤنث- کچه غرمه- ځاښت-
ورد:(ورد)اسم- واحد- مذكر- ګلاب- ګل- جمع وردونه-
ورد:(ورد)اسم- واحد- مذكر- هغه کار چې روزانه کيږی او ناغه پکښې نهٔ وی- وظيفه- جمع وردونه-
وردانګل:(ور-دانګ-ګل)فعل- ورټوپلل- ورجوکل- ځهٔ ته ټوپ کول- ورغرځېدل- ورټوپ کول-
وردی:(ور-دی)اسم- واحد- مؤنث- د سپائی سرکاری لباس-
وردول:(ور-ده-ول)مصدر متعدی- جدا کول- شلول-
وردون:(ور-ده-ون)حاصل مصدر- وګورئ وردول-
وردونکے:(ور-ده-ون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع وردونکی- مؤنث وردونکې- وګورئ وردول-
وردونګ:(ور-ده-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ وردول-
وردونه:(ور-ده-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وردول-

وردېدل:(ور-دې-دل)مصدر لازم- خپلو کښې جدا کېدل- جامې شلېدل-
وردېدلے:(ور-دې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- جمع وردېدلی- مؤنث وردېدلې- وګورئ وردېدل-
وردېدن:(ور-دې-دن)حاصل مصدر- وګورئ وردېدل-
وردېدنګ:(ور-دې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ وردېدل-
وردېدنه:(ور-دې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وردېدل-
وردېدونکے:(ور-دې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- جمع وردېدونکی- مؤنث وردېدونکې- وګورئ وردېدل-
وردېدهٔ:(ور-دې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ وردېدل-
وررز:(وره-رز)اسم- واحد- مذكر- مرز- وررزړ- نمرز- نورز- سائنسی نوم کوټرنکس (COTURNIX)-
ورزا:(ور-زا)اسم- ذرې ذرې کونه- قيمه کونه- ورژا-
ورزړ:(وره-زړ)اسم- واحد- مذكر- وګورئ وررز-
ورزش:(ور-زش)اسم- واحد- مذكر- وجود ته مسلسل حرکت ورکونه- خواری- مشق- قويت- (م- فارسی)-
ورزل:(ور-زل)مصدر متعدی- رېزه رېزه کول- مېده کول- قيمه کول- ټکول- ريچې کول-
ورزلے:(ور-زهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګورئ ورزل-
ورزنه:(ور-زهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورزل-
ورزو:(ور-زو)اسم- واحد- مذكر- کرکه- نفرت-
ورزول:(ور-زه-ول)مصدر متعدی- (۱)رېزه رېزه کول- مېده کول- قيمه کول- ټکول- ريچې کول- (۲)دنګول- ازچت اوچت کول- پورته پورته کول-
ورزون:(ور-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورزول-
ورزونکے:(ور-زه-زون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- وګورئ ورزول-
ورزونه:(ور-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورزول-
ورزېدل:(ور-زې-دل)مصدر لازم- مېده قيمه کېدل- ټکېدل- ريچې کېدل-
ورزېدلے:(ور-زې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذكر- وګورئ ورزېدل-
ورزېدن:(ور-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورزېدل-
ورزېدنه:(ور-زې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورزېدل-
ورزېدونکے:(ور-زې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذكر- وګورئ ورزېدل-
ورزېدهٔ:(ور-زې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صيغه- وګورئ ورزېدل-
ورژا:(ور-ژا)اسم- وګورئ ورزا-
ورژل:(ور-ژل)مصدر متعدی- (۱)وګورئ ورزل- (۲)ژوبلول-
ورژن:(ور-ژن)حاصل مصدر- وګورئ ورژل-
ورژنګ:(ور-ژنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورژل-
ورژنه:(ور-ژهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورژل-

ی (ښی-رل)، ې (ضې-ره-ول)، ئ (پيا-لي)، ېږ (تن-دېږ) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ورژونکے:(ور-ژون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورژل-

ورژونے:(ور-ژو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ لېټي په شان دَ خوراک يو قسم چې لهٔ اوړو پخولے شي او غوړي او ترې پکښې اچولے شي-

ورږ:(ورږ)اسم- واحد- مذکر- دَ اس يا دَ اسپې دَ څټ وېښتهٔ- ايال-

ورږه:(ور-ږه)اسم- واحد- مؤنث- زغانځه- يوه مشهوره حشره چې تور رنګ لري او پهٔ ټوپونو ګرځي- چرته چې انسان وچيچي هغه ځائې وپرسيږي او خارښت پېدا کړي- کله کله دَ طاعون دَ خورېدلو ذريعه ګرځي-

ورږهٔ:(ور-ږهٔ)اسم- جمع- مذکر- زاروهٔ- اوروهٔ- وارهٔ- وارژهٔ-

ورساتونے:(ور-سا-تو-نے)اسم- واحد- مذکر- دَ دروازې څوکيدار- ورساتے-

ورساتے:(ور-سا-تے)اسم- واحد- مذکر- څوکيدار- دربان- قابوچي- غاوچي- وربه- ورساتونے-

ورستاړے:(ورس-تا-ړے)صفت- وګورئ وروستاړے-

ورستن:(ورس-تن)اسم- واحد- مؤنث- برستن- نيالي- نالي- نهالي-

ورستنول:(ور-سته-نه-ول)مصدر متعدي- ورواپس کېدل- بېرته ورلېږل- بېرته ورکول- وګورئ ورستنول-

ورستنون:(ور-سته-نه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورستنول-

ورستنونکے:(ور-سته-نه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورستنول-

ورستنونګ:(ور-سته-نه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورستنول-

ورستنونه:(ور-سته-نه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورستنول-

ورستنېدل:(ور-سته-نې-دل)مصدر لازم- ورواپس کېدل- بېرته ورتلل- وګورئ ورستنېدل-

ورستنېدن:(ور-سته-نې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورستنېدل-

ورستنېدنه:(ور-سته-نې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورستنېدل-

ورستنېدونکے:(ور-سته-نې-دون-کے)اسم فاعل- جمع ورستنېدونکي- مؤنث ورستنېدونکې- وګورئ ورستنېدل-

ورستنېدهٔ:(ور-سته-نې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ورستنېدل-

ورستنے:(ورس-ته-نے)صفت- آخرنے- آخري- پاتې- وروستنے- ورستينے- وروستے-

ورستو:(ورس-تو)اسم صفت- وروستو- شا ته- پاتې- آخري- دَ وړاندي ضد-

ورستوالے:(ورست-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- زوړوالے-

ورستول:(ورس-ته-ول)مصدر متعدي- زړول- ناقابل استعمال کول-

ورستون:(ورس-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورستول-

ورستونول:(ور-ستو-نه-ول)مصدر متعدي- بېرته کول- پهٔ ستنه کول- واپس کول- وګورئ ورستنول سره دَ لوازماتو-

ورستونګ:(ورس-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورستول-

ورستونه:(ورس-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورستول-

ورستونېدل:(ور-ستو-نې-دل)مصدر لازم- پهٔ ستنه کېدل- واپس کېدل- بېرته کېدل- وګورئ ورستنېدل سره دَ لوازماتو-

ورستوونکے:(ورس-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورستول-

ورسته:(ورس-ته)اسم صفت- واحد- مؤنث- دَ وروست مؤنث ضعيفه- زړه- فرسوده-

ورستينے:(ورس-تي-نے)صفت- وګورئ ورستنے-

ورستېدل:(ورس-تې-دل)مصدر لازم- لهٔ کاره وتل- زړېدل- دَ استعمال قابل نهٔ پاتې کېدل- فرسوده کېدل-

ورستېدن:(ورس-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورستېدل-

ورستېدنګ:(ورس-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورستېدل-

ورستېدنه:(ورس-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورستېدل-

ورستېدهٔ:(ورس-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراري دَ واحد غائب صيغه- وګورئ ورستېدل-

ورستې:(ورس-تې)اسم صفت- مؤنث- دَ ورستو مؤنث- شا ته- وروستې-

ورسره:(ور-س-ره)حرف جار- نژدې- خوا پهٔ خوا- لګېدلے-

ورسره ورسره:(ور-س-ره-ور-س-ره) متعلق فعل - نزدې نزدې- نژدې نژدې-

ورسک:(ور-سک)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ مخ هغه حصه چې وېښتهٔ پرې وي- شونډه- (۲)دَ دوو غرونو پهٔ مينځ کښې تنګه لاره- (۳)رُوبند- تربوزک- (۴)اُربز- (۵)کوم ځائې چې غر او مېدان يو ځائې شوے وي- (۶)دَ خرهٔ يا دَ اوښ پوزه- (۷)هغه پګړي چې دَ زني لاندې تړلے شوې وي او مخ پرې پټ شوے وي- (۸)غاړه- پشتې- جمع ورسکونه-

ورشاړ:(ور-شا-ړ)اسم- واحد- مذکر- اورشاړ- چقمق ټوپک- چقماق ټوپک-

ورشکې:(ور-ش-کې)اسم- واحد- مؤنث- دَ تورې پېټې- چې توره پکښې ايښودے شي-

ورشمے:(ور-شه-مے)اسم- واحد- مذکر- دَ مړي روح ته دَ ثواب بخښلو پهٔ خاطر دَ ورومبنی نمابنام خيرات-

ورشنډ:(ور-شنډ)اسم- واحد- مؤنث- شونډې- شونډه-

ورشو:(ور-شو)اسم- واحد- مؤنث- دَ څاروو او څناورو دَ څرن ځائې- واښهٔ لرونکے مېدان- چراګاه- څرنځائې- جمع ورشوګانې-

ورښ:(ورښ)اسم- واحد- مذکر- (۱)ورمه- نرے باد- شمال- ابشمه- (۲)دَ اس پهٔ څټ ولاړ وېښتهٔ-

ورښت:(ور-ښت)اسم- واحد- مذکر- (۱)ورېدنه- ورو- (۲)واوره ورېدنه- واوره کېدنه- راپرېوتنه-

ورښتې:(ور-ښ-تې)اسم- جمع- مذکر- ورغښتې- بادام- نباتاتي نوم ټرمينيليا کېټپا (TERMINALIA CATAPPA) يا امېګډيلس کميونس (AMYGDALUS COMMUNIS)-

ورښکے:(ور-ښکے)اسم- واحد- مذکر- تسمه- تراده- پاړه- جمع ورښکي-

وربنودل:(ور-ښو-دل)مصدر متعدي- ښکاره کول- ښودل- ورزده کول-

ورښوول- ورښیل-

ورښودن:(ور-ښو-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورښودل-

ورښودنګ:(ور-ښو-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورښودل-

ورښودنه:(ور-ښو-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورښودل-

ورښودونکے:(ور-ښو-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورښودل-

ورښوول:(ور-ښو-ول)مصدر متعدی- وګورئ ورښودل-

ورښوولے:(ور-ښو-وهٔ-لے)اسم مفعول- جمع ورښوولی- مؤنث ورښوولې- وګورئ ورښوول-

ورښوون:(ور-ښو-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورښوول-

ورښونکے:(ور-ښو-وون-کے)اسم فاعل- جمع ورښونکی- مؤنث ورښونکې- وګورئ ورښوول-

ورښوونګ:(ور-ښو-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورښوول-

ورښوونه:(ور-ښو-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورښوول-

ورښیل:(ور-ښهٔ-یل)مصدر متعدی- وګورئ ورښودل-

ورښیلے:(ور-ښهٔ-یهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ورښیلی- مؤنث ورښیلې- وګورئ ورښیل-

ورښین:(ور-ښهٔ-ین)حاصل مصدر- وګورئ ورښیل-

ورښینه:(ور-ښهٔ-یهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورښیل-

ورښیونکے:(ور-ښهٔ-یون-کے)اسم فاعل- جمع ورښیونکی- مؤنث ورښیونکې- وګورئ ورښیل-

ورطه:(ور-طه)اسم- واحد- مؤنث- ګرداب- د ملاکت ځاې- (م- عربی)-

ورع:(و-رع)اسم صفت- واحد- مؤنث- پرمېزګاری- (م- عربی)-

ورغ:(و-رغ)اسم- واحد- مذکر- (۱)موش- حواس- وار پار- (۲)ایمانداری- (م- فارسی)-

ورغاست:(ور-غاست)اسم- واحد- مذکر- حمله- یرغل-

ورغاستل:(ور-غاس-تل)مصدر لازم- حمله کول-

ورغاستلے:(ور-غاس-تهٔ-لے)اسم مفعول- جمع ورغاستلی- مؤنث ورغاستلې- وګورئ ورغاستل-

ورغاستن:(ور-غاس-تن)حاصل مصدر- وګورئ ورغاستل-

ورغاستنه:(ور-غاس-تهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورغاستل-

ورغاستونکے:(ور-غاس-تون-کے)اسم فاعل- جمع ورغاستونکی- مؤنث ورغاستونکې- وګورئ ورغاستل-

ورغالے:(ور-غا-لے)اسم- واحد- مذکر- نغرے- انغرے- آتشدان- اورغالے-

ورغانی:(ور-غا-نی)اسم- واحد- مؤنث- د غنمو اوړهٔ چې خمبیره شی- خمیره- صغه لږه خمبیره چې پهٔ کولپی کښې د نورو اوړو د خمبیره کولو د پاره ساتلے کیږی-

ورغانے:(ور-غا-نے)اسم- واحد- مذکر- د اندازې نه کار اخستنه- قیاس- اټکل- (د جنګول مصدر سره)-

ورغږ:(ور-غږ)اسم- واحد- مذکر- پهٔ وله یا اُبو کښې ژور ځاې- د غږهٔ لمن-

ورغږے:(ور-غهٔ-ږے)اسم- واحد- مذکر- د اُبو تل- د اُبو بېخ-

ورغږېدل:(ور-غ-ږې-دل) مصدر متعدی- ورغُرځېدل- ورګزارېدل- ورپرېوتل-

ورغستل:(ور-غس-تل)مصدر متعدی- ورغاندل- ټکول- دل کول-

ورغستلے:(ور-غس-تهٔ-لے)اسم صفت- ټکول شوے- دل شوی(جوار یا غنم)-

ورغندل:(ور-غن-دل)مصدر متعدی- ورلاندې کول-

ورغومے:(ور-غو-مے)اسم- واحد- مذکر- (۱)د چېلې بچے- چیلوکے- (۲)د شمسی کال لسمه میاشت- (۳)د اسمان لسم برج-

ورغوے:(ور-غهٔ-وے)اسم- واحد- مذکر- تلے- د لاس تلے-

ورغهٔ:(ور-غهٔ)اسم- واحد- مذکر- کارغهٔ- وروغ-

ورغی:(ور-غی)اسم- واحد- مؤنث- صغه تورکے چې د لوګی پهٔ وجه چت باندې نښتے وی-

ورق:(ورق)اسم- واحد- مذکر- صفحه- پاڼه- (م- عربی)-

ورقه:(ور-قه)اسم- واحد- مؤنث- پاڼه- د کتاب صفحه- جمع ورقې- (م- عربی)-

ورک:(ورک)صفت- چې د انسان لهٔ نظره پټ یا لرې وی- نهٔ ښکارېدونکے- نهٔ پیدا کېدونکے- ضائع-

ورکړه:(ورک-ړه)اسم- واحد- مؤنث- خېرات- صدقه- بخښنه- د ورکول مصدر نه اسم او امر-

ورکړه راکړه:(ورک-ړه-راک-ړه)اسم- مؤنث- معامله- خپلوی کونه- رشته کونه- لین دین-

ورک لارے:(ورک-لا-رے)اسم- صغه سړے چې لاره ئې بې درکه کړې وی- ورک شوے- بې درکه- جمع ورک لاری-

ورک لېونے:(ورک-لې-و-نے)اسم صفت- سخت مئین- شېدا-

ورک مانے:(ورک-ما-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- خنده رویه- خوش مزاجه-

ورک مرغهٔ:(ورک-مر-غهٔ)اسم- واحد- مذکر- یو خیالی مارغهٔ- عنقا-

ورک نومے:(ورک-نو-مے)اسم صفت- واحد- مذکر- چې مشهور نهٔ وی- نوم ورکے- بې نام ونشان- ګمنام- جمع ورک نومی-

ورکوټوالے:(ور-کوټ-وا-لے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وړوکتوب-

ورکوزول:(ور-کو-زه-ول)مصدر متعدی- (۱)ورښکته کول- لاندې وروستل-

ورکوزون:(ور-کو-زه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورکوزول-

ورکوزونکے:(ور-کو-زه-وون-کے)اسم فاعل- وګورئ ورکوزول-

ورکوزونګ:(ور-کو-زه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورکوزول-

ورکوزونه:(ور-کو-زه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورکوزول-

ورکوزېدل:(ور-کو-زې-دل)مصدر لازم- ښکته ورتلل- کوز ورتلل- لاندې ورتلل-

ورکوزېدن:(ور-کو-زې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورکوزېدل-

ورکوزېدنګ:(ور-کو-زې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورکوزېدل-

ورکوزېدنه:(ور-کو-زي-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورکوزېدل-

ورکوزېدونکے:(ور-کو-زي-دوْن-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورکوزېدونکی- مؤنث ورکوزېدونکې- وګورئ ورکوزېدل-

ورکوزېدهٔ:(ور-کو-زي-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ ورکوزېدل-

ورکول:(ور-که-ول)مصدر متعدی- (۱)بخښل- عطاکول- دٔ خپلې قبضې نه دٔ بل قبضې ته سپارل- حواله کول- (۲)وهل- (څپېړه ورکول)- (۳)جاری کول- (سزا حکم وغېره)-

ورکول:(ورهٔ-ک-ول)مصدر متعدی- ضائع کول- لاپته کول- ختمول- بې درکه کول- وګورئ ورک-

ورکون:(ور-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورکول-

ورکون:(ورهٔ-ک-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورکول-

ورکونه:(ور-ک-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورکول-

ورکونه:(ورهٔ-ک-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورکول-

ورکوونکے:(ور-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورکول ۱-

ورکوونکے:(ورهٔ-ک-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورکول ۲-

ورکه:(ور-که)دٔ فعل نه امر- ورکړه- ورکول-

ورکه:(ورهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- (۱)ورک شوے- ورکه شوې- بې درکه- (۲)پهٔ چوکه کښې خالی ځایونو کښې دٔ بوزغلی یا تخم اچونه- (۳)صفت ورک شوے څیز-

ورکېدل:(ور-کې-دل)مصدر لازم- ورکړے کېدل- دٔ ورکول مصدر لازم-

ورکېدل:(ورهٔ-کې-دل)مصدر لازم- ختمېدل- بې درکه کېدل- لاپته کېدل- ورک کېدل-

ورکېدن:(ورهٔ-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورکېدل ۲-

ورکېدن:(ور-کې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورکېدل ۱-

ورکېدنګ:(ورهٔ-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورکېدل ۲-

ورکېدنګ:(ور-کې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورکېدل ۱-

ورکېدنه:(ورهٔ-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورکېدل ۱-

ورکېدنه:(ور-کې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورکېدل ۱-

ورکېدونکے:(ورهٔ-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورکېدل ۲-

ورکېدونکے:(ور-کې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورکېدونکی- مؤنث ورکېدونکې- وګورئ ورکېدل ۱-

ورکېدهٔ:(ورهٔ-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ ورکېدل ۲-

ورکېدهٔ:(ور-کې-دهٔ)حاصل مصدر او دٔ ماضی استمراری دٔ واحد غائب صیغه- وګورئ ورکېدل ۱-

ورګ:(ورګ)اسم- واحد- مذکر- وړی-

ورګ:(ورګ)صفت- (۱)یو کلنے اوښ- (۲)پنځهٔ کلنے ګډ- مؤنث ورګه-

ورګړ:(ور-ګړ)اسم- واحد- مذکر- مؤنث ورګړه- بې تامله- بې مُحابا- بې وېرې دٔ هر څهٔ نه ورتېر- بې پروا-

ورګړول:(ور-ګه-ړه-ول)مصدر متعدی- یو ځایٔ کول- شاملول-

ورګړون:(ور-ګه-ړه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورګړول-

ورګړونګ:(ور-ګه-ړه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورګړول-

ورګړونه:(ور-ګه-ړه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورګړول-

ورګړونکے:(ور-ګه-ړه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورګړول-

ورګړه:(ور-ګه-ړه)اسم- واحد- مؤنث- شامله-

ورګړے:(ور-ګه-ړے)صفت- وګورئ ورګړ-

ورګن:(ور-ګن)اسم- واحد- مذکر- پشم رېشنه-

ورګه:(ور-ګه)اسم- واحد- مؤنث- دٔ غوړونو پوسکی-

ورګه:(ور-ګه)صفت- دٔ ورګ مؤنث- وګورئ ورګ-

ورلاندې:(ور-لان-دې)حرف جار- وربښکته- ورکوز- (دٔ لاندې سره دٔ ور پهٔ غائبانه لاحقه جوړ شوے ټکے)-

ورلره:(ور-له-ره)حرف عطف- هغهٔ لره- هغې لره- ورته- (دٔ لره سره دٔ ور پهٔ غائبانه لاحقه جوړ شوے توررے)-

ورلښتے:(ور-لښ-تے)اسم- واحد- مذکر- بادام- جمع ورلښتي-

ورلغت:(ور-له-غت)متعلق فعل- پهٔ پونده-پهٔ لته- (دٔ آس یا دٔ سورلی یا دٔ بل څناور دٔ تېز تللو دٔ پاره استعمالېږی)-

ورلغتول:(ور-له-غه-ته-ول)مصدر متعدی- آس یا بل کوم دٔ سورلۍ څناور تېز چلول-

ورلغتون:(ور-له-غه-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورلغتول-

ورلغتونکے:(ور-له-غه-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع ورلغتونکی- مؤنث ورلغتونکې- وګورئ ورلغتول-

ورلغتونګ:(ور-له-غه-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورلغتول-

ورلغتونه:(ور-له-غه-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورلغتول-

ورلول:(ور-له-ول)مصدر متعدی- حامله کول- بلاربول-

ورلون:(ور-له-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورلول-

ورلونکے:(ور-له-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورلول-

ورلونګ:(ور-له-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورلول-

ورلونه:(ور-له-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورلول-

ورله:(ور-له)صفت- امېدواره چې پهٔ ګېډه ئې بچے وی- حامله- شیګاره- بلاربه- جمع ورلې-

ورله:(ور-له)حرف عطف- وګورئ ورلره-

ورله انا:(ور-له-أ-نا)اسم- واحد- مؤنث- دٔ نیا مور- دٔ نیا نیا- جمع ورلې انا-

ورله کېدل:(ور-له-کې-دل)مصدر لازم- بلاربېدل-

ورلېدل:(ور-لې-دل)مصدر لازم- بلاربېدل- حامله کېدل- بچے پهٔ ګېډه کېدل-

ورلېدلي:(ور-لې-دهٔ-لې)صفت-واحد- مؤنث- وګورئ ورلېدل-

ورلېدن:(ور-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورلېدل-

ورلېدنګ:(ور-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورلېدل-

ورلېدنه:(ور-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورلېدل-

ورلېدونکے:(ور-لې-دون-کے)اسم فاعل- وګورئ ورلېدل-

ورلېدهٔ:(ور-لې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضي استمراري د واحد غائب صيغه- وګورئ ورلېدل-

ورم:(و-رم)اسم- واحد- مذکر- د بيمارۍ يا زخم په وجه د بدن پړسېدنه- پاړسوب- جمع ورمونه-

ورم:(ورم)اسم- واحد- مذکر- صلاح مشوره- لمسون- وعظ- شېطانے- پند- نصيحت- جمع ورمونه-

ورماکه:(ور-ما-که)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو يوه بيماري چې د مغې په وجه پرې په خلهٔ دانې راوخيژي-

ورمندن:(ور-من-دن)اسم- واحد- مذکر- نصيحت-

ورمولے:(ور-مو-لے)اسم- واحد- مذکر- د ماشومانو يوه بيماري چې د مغې په وجه ئې دستونه کيږي- وګورئ اُرمولے جمع ورمولي-

ورمېږ:(ور-مېږ)اسم- واحد- مذکر- ښپ- مري- غاړه- جمع ورمېږونه-

ورنبے:(ورن-بے)اسم- واحد- مذکر- ورومبے- اولنے-

ورند:(و-رند)اسم صفت- (۱)وربدونکے- (۲)اخوړندې اېنه-

ورندار:(ورن-دار)اسم- واحد- مؤنث- ورندار د ورور ښځه- جمع ورنداري ورنداريانې-

ورنداره:(ورن-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ ورندار-

ورندے:(و-رن-دے)اسم صفت- بهېر وربدونکے- مسلسل وربدونکے-

ورنډه:(ورن-ډه)اسم- واحد- مؤنث- کنډ کوټه- غوبمنه- ناڅاپي حمله-

ورنه:(ور-نه)حرف جار- ورځنې- له دغه- لهٔ دغې خبرې- د ور د غائبانه لاحقې نه و د نه حرف جار نه جوړ شوے تورے-

ورنيکه:(ور-نې-که)اسم- واحد- مذکر- د نيکهٔ پلار- د نيکه نيکهٔ- غور نيکهٔ- جمع ورنيکونه-

ورڼ:(ورڼ)اسم- واحد- مذکر- تابوت- جنازه-

ورنبے:(ور-نبے)اسم- واحد- مذکر- هغه کېږه چې پکښې وړهٔ ماشومان ترلے شي- اُرنے- جمع ورنبې-

ورو:(ورو)اسم صفت متعلق فعل- په قلار- په آرام- په مزه- د تېز يا ژر ضد-

وروخه:(ورو-خه)اسم- واحد- مؤنث- د کډو بيزو سپره- کنه-

وروخه:(ورو-خه)اسم- واحد- مؤنث- ستړکو نه پاس د ورېښتو نری کرښه- جمع وروخې-

وروخې:(ورو-خې)اسم- جمع- مؤنث- ورځې- د وروخه جمع-

ورود:(و-رود)اسم- واحد- مذکر- ننه داخلېدنه- راتلنه- رارسېدنه- تشريف راوړنه- رکوزېدنه-

ورور:(ورور)اسم- واحد- مذکر- (۱)يو داسې کس چې بل سړی يا ښځې سره د يو مور پلار نه يا د يوې مور نه د پېدا کېدو تعلق لري- په ورومبي حالت کښې سکه ورور او په دوېم کښې ناسکه ورور بللے شي- (۲)ځنې وخت کښې د نوم په ځائې ونيلے کيږي- (۳)ډېر خوږ دوست- رشته دار-

ورور:(ور-ور)اسم- واحد- مذکر- د خاوند لهٔ خوا ناوې ته ورکړے کېدونکے رقم- ولور-

ورور عزيز:(ورور-عه-ريز)اسم- واحد- مذکر- خپل خپلوان- خپل پردے- يار آشنا- جمع ورونړه عزيزان-

وروړکے:(ورو-ړه-کے)اسم تصغير- وړوکے ماشوم- د ورور اسم تصغير-

وروړګلوي:(ورور-ګل-وي)اسم- واحد- مؤنث- وروروٸي- دوستي- راشه درشه-

وروړکيري:(ورور-ګي-ري)اسم- واحد- مؤنث- پخه دوستي- وروروٸي-

ورورولي:(ورور-و-لي)اسم- واحد- مؤنث- ورورګلوي- برادري- دوستي-

وروري:(ورو-ري)اسم- واحد- مؤنث- ورورولي- دوستي-

وروړے:(ورو-ړے)اسم- واحد- مذکر- په غرهٔ کښې د ښاروؤ د پاره د پناه ځاي-

وروړل:(ور-وړل)مصدر متعدي- چا له اوړل- چا ته رسول-

وروړلے:(ور-وړهٔ-لے)اسم مفعول- وګورئ وروړل-

وروړن:(ور-وړن)حاصل مصدر- وګورئ وروړل-

وروړنګ:(ور-وړنګ)حاصل مصدر- وګورئ وروړل-

وروړنه:(ور-وړهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وروړل-

وروړونکے:(ور-وړون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وروړل-

وروست:(وروست)اسم صفت- واحد- مذکر- پخوانے- زوړ- روست- خوړلے شوے- کچه شوے- خراب شوے- جمع وراستهٔ- مؤنث ورسته-

وروستاړے:(وروس-تا-ړے)صفت- (۱)وروستنے- آخري- آخرينے- (۲)اسم- واحد- مذکر- لاحقه- د اسم يا صفت په آخر کښې راتلونکے علامت-

وروستنے:(وروس-ته-نے)اسم صفت- مذکر- وروستاړے-

وروستول:(وروس-ته-ول)مصدر متعدي- خرابول- زړول- استعمالول- ورستول-

وروستون:(وروس-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ وروستول-

وروستونکے:(وروس-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وروستول-

وروستونګ:(وروس-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ وروستول-

وروستونه:(وروس-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وروستول-

وروسته:(وروس-ته)صفت متعلق فعل- (۱)وروستو- پس- پاتې- (۲)زړه- ريشه-

وروستي بال:(وروس-تي-بال)متعلق فعل- وګورئ وروستينبال-

وروستينبال:(وروس-تين-بال)متعلق فعل- په آخر کښې- آخري کښې-

وروستے:(وروس-تے)اسم صفت- مذکر- شاتنے- آخري-

وروغ:(وروغ)اسم- واحد- مذکر- کارغهٔ- ورغهٔ-

ورول:(و-ره-ول)مصدر متعدي- د باران د څاڅکو په شان توېول- ګوزارول-

ی (ښی-رل)، ی (صې-ره-ول)، ی (پيا-لي)، ے (تن-دے) تفصيل د پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

ورولېدل:(ور-ولې-دل)مصدر- څهٔ څیز کښې پرېوتل- دَ څهٔ څیز حقیقت ته رسېدل-

ورولېدلے:(ور-ولې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- جمع ورولېدلي- مؤنث ورولېدلې- وګورئ ورولېدل-

ورولېدن:(ور-ولې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورولېدل-

ورولېدنګ:(ور-ولې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورولېدل-

ورولېدنه:(ور-ولې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورولېدل-

ورولېدونکے:(ور-ولې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورولېدل-

ورولېدهٔ:(ور-ولې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ورولېدل-

ورولے:(و-ره-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ورول-

ورون:(و-رون)اسم- واحد- مذکر- نله- بنانګه- پتون- دَ بنیادم پهٔ بدن کښې دَ کناتې او دَ کونډې تر مینځ ځائې- زنګون- جمع ورونونه-

ورون:(و-ره-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورول-

ورونکے:(و-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورول-

ورونګ:(و-ره-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورول-

ورونه:(و-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورول-

ورونے:(ورو-نے)اسم- واحد- مذکر- ورنے- څېزنې- سیزنې- جمع ورنې-

ورو ورو:(ورو-ورو)اسم صفت- پهٔ قلار قلار- پهٔ مزه مزه-

ورهٔ:(و-رهٔ)اسم- واحد- مذکر- دروازه- دَ ور مغیره حالت-

ورمسته:(ور-مس-ته)متعلق فعل/صفت- لرې- یو خوا ته- وګورئ ورمیسته-

ورمنه:(ور-مهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- کسب- هنر- کار- شُغل-

ورمول:(ور-مه-ول)مصدر متعدی- خلاصول- ازادول-

ورمولے:(ور-مه-وهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ورمول-

ورمون:(ور-مه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورمول-

ورمونکے:(ور-مه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورمول-

ورمونګ:(ور-مه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورمول-

ورمونه:(ور-مه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورمول-

ورمیسته:(ور-میس-ته)متعلق فعل/صفت- اخوا ته- دَ لرې- ورمسته-

ورمېدل:(ور-مې-دل)مصدر لازم- آزادېدل- خلاصېدل-

ورمېدلے:(ور-مې-دهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ورمېدل-

ورمېدن:(ور-مې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورمېدل-

ورمېدنګ:(ور-مې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورمېدل-

ورمېدنه:(ور-مې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورمېدل-

ورمېدونکے:(ور-مې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورمېدل-

ورمېدونے:(ور-مې-دو-نے)اسم فاعل- واحد- مذکر- خلاصېدونکے- آزادېدونکے-

ورمېدهٔ:(ور-مې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ ورمېدل-

وریا:(ور-یا)اسم- واحد- مذکر- باران-

وریا:(ور-یا)اسم- واحد- مؤنث- (۱) حاشیه- (۲)صفت- ډېر لرې- پهٔ فاصله-

وریت:(وریت)صفت- (۱)دَ اور پهٔ تاؤ پوخ- پهٔ انګار پوخ- کباب شوے- (۲)سوزېدلے- (۳)قهر اخستے- غصه شوے-

وریت پیت:(وریت-پیت)صفت- (۱) سخت قهر اخستے- (۲)سختې ګرمی وهلے-

وریتول:(وری-ته-ول)مصدر متعدی- (۱)پهٔ اور پخول- نینې کول- (۲)غصه کول-

وریتون:(وری-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ وریتول-

وریتونکے:(وری-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- جمع وریتونکي- مؤنث وریتونکې- وګورئ وریتول-

وریتونګ:(وری-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ وریتول-

وریتونه:(وری-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وریتول-

وریته:(وری-ته)اسم- واحد- مؤنث- (۱) پهٔ اور پخ شوې غوښه- کباب کړې غوښه- پهٔ اور پخ شوې تیکه-(۲)دَ وریتو غوښو مېلمستیا- (۳)صفت- دَ وریت مؤنث-

وریته ګر:(وری-ته-ګر)اسم- واحد- مذکر- تیکې خرڅونکے- کباب خرڅوونکے-

وریتې:(وری-تې)صفت- (۱)ورتې شوې- سوزېدلې- نینې شوې- (۲)دَ وریتو غوښو مېلمستیاګانې- دَ وریته جمع-وګورئ وریته-

وریتېدل:(وری-تې-دل)مصدر متعدی- (۱) پهٔ اور پخېدل- نینې کېدل- سوزېدل- (۲)غصه کېدل-

وریتېدن:(وری-تې-دن)حاصل مصدر- وګورئ وریتېدل-

وریتېدنګ:(وری-تې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ وریتېدل-

وریتېدنه:(وری-تې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وریتېدل-

وریتېدونکے:(وری-تې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وریتېدل-

وریتېدهٔ:(وری-تې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صیغه- وګورئ وریتېدل-

وریخ:(ور-یخ)اسم- واحد- مذکر- پهٔ آسمان هغه لړې چې باران ترې ورېږي- ورېځ-

ورید:(و-رید)اسم- واحد- مذکر- دَ څټ غټ رګ- شاه رګ- شه رګ-

وریژه:(وری-ژه)اسم- واحد- مؤنث- غله- نباتاتی نوم اورېزا سېټې وا (ORYZA SATIVA) لرونکې بوټی چې دانه ئې دَ خوراک دَ پاره استعمالیږي- جمع وریژې-

وریژینه:(وری-ژی-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ وریژو اوړو نه جوړه روټۍ چې خواږهٔ پکښې ګډ وي-

وریسته وریسته:(ور-ایس-ته-ور-ایس-ته)صفت/متعلق فعل- لرې لرې-

بهر بهر - پهٔ ډېره ډېره-

ورین:(ورین)اسم- واحد- مذکر- کشاده- ارت- عام طور سره د تندی د صفت پهٔ طور استعمالیږی-

وریندار :(ورین-دار)اسم- واحد- مؤنث- ورندار- د ورور ښځه- جمع وریندارياني-

ورینداره:(ورین-دا-ره)اسم- واحد- مؤنث- د ورور ښځه- بابی-

ورینکے:(ورین-کے)اسم- واحد- مذکر- نرے نرے باران-

وریښه:(وري-نه)اسم- واحد- مؤنث- د ورین- مؤنث روښان غوړېدلے- وګورئ ورین-

وریښے:(و-ري-نے)اسم- واحد- مذکر- خوشحاله- سُوکاله-

ورییه:(وري-يه)متعلق فعل/صفت- لرې- پهٔ فاصله-

ورېخ:(ورېخ)اسم- وګورئ وریځ-

ورېت:(ورېت)صفت- څرګند- ښکاره- جوت- (متروک)-

ورېدل:(و-رې-دل)مصدر متعدی- باران کېدل- متواتر څهٔ څيز د بره نه لاندې راپرېوتل- (لکه ږلۍ، کاڼی او داسې نور)-

ورېدن:(و-رې-دن)حاصل مصدر- وګورئ ورېدل-

ورېدنګ:(و-رې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ ورېدل-

ورېدنه:(و-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورېدل-

ورېدونکے:(و-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورېدل-

ورېدهٔ:(و-رې-دهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ورېدل-

ورېرونه:(وري-رو-نه)اسم- د ورارهٔ جمع- د ورور ځامن-

ورېره:(وري-ره)اسم- واحد- مؤنث- د ورور لُور- د ورارهٔ مؤنث-

ورېږن:(وري-ږون)اسم صفت- مېده څيزونه-

ورېښل:(وري-ښل)مصدر متعدی- نغښتل- سکښتل- ورېښول-

ورېښلے:(وري-ښهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ ورېښل-

ورېښن:(وري-ښن)حاصل مصدر- وګورئ ورېښل-

ورېښنه:(وري-ښهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورېښل-

ورېښونکے:(وري-ښون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورېښل-

ورېښول:(وري-شه-ول)مصدر متعدی- وګورئ ورېښل-

ورېښون:(وري-شه-ون)حاصل مصدر- وګورئ ورېښل-

ورېښونکے:(وري-شه-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ ورېښل-

ورېښونګ:(وري-شه-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ ورېښل-

ورېښونه:(وري-شه-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ ورېښل-

ورېښوهٔ:(وري-شه-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ ورېښل-

ورېښم:(وري-ښم)اسم- واحد- مؤنث- ریښم- یو قیمتی تار چې د یو قسم چینجی نه حاصلوے شی او کپړه ترې جوړیږی-

ورېښمین:(ورېښ-مین)صفت- ریښمین- ریښمی- د ورېښمو نه جوړ- مؤنث ورېښمینه-

وربښه:(وري-ښه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)حلوا- (۲)د مړی خېرات چې عموماً د جمعې پهٔ شپه کولے شي-

وربغ:(و-ربغ)اسم- واحد- مذکر- رنګ جمع وربغونه-

وړ:(وړ)اسم- صفت- جوګه- اعتبار- قابل- مناسب- موزون-

وړ:(وړ)اسم- واحد- مذکر- زوروړ- پهٔ حق- بې ګناه- د پړ ضد-

وړ:(وړ)اسم- واحد- مذکر- جنس- د یو جنس څیزونه-

وړاندینے:(وړان-دی-نے)اسم صفت- مخکښنے- مخکښینے- پخوانے-

وړاندې:(وړان-دې)اسم صفت/متعلق فعل- مخکښې- وړومبے-

وړانګه:(وړانګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- پلوشه- رڼا-

وړانه:(وړا-نه)اسم- واحد- مؤنث- د وړ کېدوحالت- بې ګناهی-

وړانه پړانه:(وړا-نه-پړا-نه)اسم مرکب- واحد- مؤنث- حق ناحق- ګټه بائیلات- دروغ رښتیا- نفع نقصان- پړ کېدنه-

وړتوب:(وړ-توب)اسم- واحد- مذکر- موزونیت- لیاقت- مناسبت-

وړتوب:(وړ-توب)اسم- واحد- مذکر- ګټه- کامیابی- غلبه-

وړغوندے:(وړ-غون-دے)اسم- واحد- مذکر- غړوندے- د څټ رسی چې خناورو ته اچولے شي-

وړکینه:(وړ-کي-نه)اسم صفت- مؤنث- کمکینه- وړه-

وړکینه:(وړ-کي-نه)اسم- واحد- مؤنث- وړوکتوب-

وړکی:(وړ-کي)اسم- واحد- مؤنث- وړه جینی- وړوکې ماشومه-

وړکے:(وړ-کے)اسم تصغیر- ماشوم-

وړل:(وړل)مصدر متعدی- (۱)یو شے لهٔ خپل ځایه بل ځائ ته منتقلول- رسول- وُچتول- (۲)زغمل- برداشت کول-

وړل راوړل:(وړل-راو-ړل)مصدر- (۱)وګورئ وړل- (۲)چغلی کول-

وړلے:(و-ړهٔ-لے)اسم مفعول- واحد- مذکر- وګورئ وړل-

وړم:(و-ړم)صفت- تېر- د کال صفت-

وړمه:(وړ-مه)صفت- د وړم مؤنث-د ورځ یا د شپې د صفت پهٔ طور استعمالیږي-

وړمه ورځ:(و-ړمه-ورځ)اسم- واحد- مؤنث- تېرې پسې تېره ورځ-

وړمی:(وړ-مي)اسم صفت- مؤنث- لومړی- وړومبی- اولنی-

وړن:(وړن)حاصل مصدر- وګورئ وړل-

وړنګ:(وړنګ)حاصل مصدر- وګورئ وړل-

وړنګن:(وړنګ-ګن)اسم صفت- خلېدونکے- رڼا کوُنکے-

وړنګه:(وړنګ-ګه)اسم- واحد- مؤنث- وړانګه- پلوشه-

وړنګے:(وړنګ-ګے)صفت- رنګے- د ګڼ ضد- لږ- کم-

وړنه:(وړهٔ-نه)حاصل مصدر- برداشت کونه- د وړل حاصل مصدر-

وړنه راوړنه:(وړهٔ-نه-راو-ړهٔ-نه)حاصل مصدر- د یو بل خبرې وړنه راوړنه- چغلی کونه-

وړوکتوب:(و-ړوک-توب)اسم- وړوکوالے- وړوکتیا- ماشومتوب-

وړوکتیا:(وَ-ړُوکْ-تیا)اسم- وګورئ وړوکتوب-

وړوکوالے:(وَ-ړوکْ-وا-لے)اسم- وګورئ وړوکتوب-

وړوکے:(وَ-ړُو-کے)اسم تصغیر- د وړ تصغیر- کمکے- کوچنے- د ستر ضد- د لوئ ضد-

وړوکے اختر:(وَ-ړو-کے-اَخ-تر)اسم مرکب- واحد- مذکر- د روژې میاشت نه پس د مسلمانانو د خوشحالۍ ورځ- عبدالفطر- د هجری کال لسمه میاشت-

وړول:(وَ-ړه-وَل)مصدر متعدی- (۱)مېده کول- (۲)ریچې کول- وګورئ اوړول-

وړومبنی:(وَړُوم-به-نی)اسم صفت- مخکښنی- تېره شوې-

وړومبنے:(وَړُوم-به-نے)اسم صفت- وړومبے- مخکښینے- تېر شوے-

وړومبی:(وَړُوم-بی)اسم صفت- مخکښینی-

وړومبی خور:(وَړُوم-بی-خور)اسم- واحد- مؤنث- ربیع الثانی- د هجری کال څلورمه میاشت- د باره وفات نه پس اسلامی میاشت-

وړومبے:(وَړُوم-بے)اسم صفت- وګورئ وړومبنے-

وړومبے:(وَ-ړو-بے)اسم- د اوړو او ابو مرکب خوراک-

وړون:(وَ-ړ-وَن)حاصل مصدر- وګورئ وړول-

وړونګ:(وَ-ړ-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وړول-

وړونه:(وَ-ړ-وَهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وړول-

وړونکے:(وَ-ړ-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وړول-

وړونے:(وَ-ړ-وو-نے)فاعل صفت- اوړه کونکے- مېده کونکے-

وړوهٔ:(وَ-ړ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ وړول-

وړه:(وَ-ړه)صفت- په قد، عمر یا وزن کښې کمه ماشومه- وړوکې- د وړ مؤنث-

وړه:(وَ-ړه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)فتح- د وړېدو حالت- (۲)د پړه ضد- د وړ مؤنث-

وړه پړه:(وَړه-پړه)اسم- واحد- مؤنث- حقه ناحقه- حق نا حق- جمع وړې پړې-

وړه وړه:(وَ-ړه-وَ-ړه)صفت- کمه کمه- لږه لږه- سپکه سپکه-

وړه وونے:(وَ-ړه-وو-نے)اسم- واحد- مذکر- غواسکے- یو غرنیزه ونه-

وړیا:(وَړ-یا)اسم صفت- (۱)بې قیمته- وېریا- بې پیسو- (۲)ارزان-

وړیکې:(وَ-ړی-کې)اسم- واحد- مؤنث- وړوکې- د وړیکے مؤنث-

وړیکی:(وَ-ړی-کی)اسم- واحد- مؤنث- ډېره ماشومه- ډېره لږه-

وړیکے:(وَ-ړی-کے)اسم- واحد- مذکر- وړوکے-

وړین:(وَ-رین)صفت- لهٔ وړی جوړ شوے-

وړینه:(وَ-ړی-نه)اسم صفت- واحد- مؤنث- د وړی نه جوړه شوې- پشمینه-

وړینے:(وَ-ړی-نے)اسم صفت- لهٔ وړی نه جوړ-

وړې:(وَ-ړې)اسم- د وړه جمع (۱)د پېو تلېدلے وړوکے ککوړے- (۲)مېده وریژې-

وړېدلے:(وَ-ړې-دهٔ-لے)اسم صفت- خوشحال- تاند-

وړې وړې:(وَ-ړې-وَ-ړې)اسم- د لویو لویو ضد- کمکی کمکی-

وړی:(وَ-ړی)اسم- مؤنث- د دالو او قیمې نه جوړ غنهاری چې کټوی کښې اچولے شی-

وړی:(وَ-ړی)اسم- واحد- مؤنث- د ګډو یا اوښانو وېښتهٔ او لهٔ دغو وېښتو جوړ تارونه- پشم-

وز:(وَز)اسم- واحد- مذکر- چېلے- نر چېلے-

وز:(وَز)اسم- واحد- مذکر- کولاچ- (۲)- صفت)مفلس- غریب- محتاج- قلاچ- کلاڅ-

وز:(وَز)صفت- اَرت- واز-

وزارت:(وَ-زا-رَت)اسم- واحد- مذکر- د وزیر کار- د وزیر عهده-

وزیون:(وز-یُون)اسم- واحد- مذکر- د چېلو کنډک- د چېلو رمه-

وزده:(وز-ده)اسم- واحد- مؤنث- وازده- چربی- وازګه-

وزر:(وَ-زر)اسم- واحد- مذکر- (۱)د مرغانو بڼه- وېښتهٔ- د مارغانو پرونه- (۲)مټ- (۳)سپک څیز- (۴)د کتاب جلد- ګور- جمع وزرونه-

وزر:(وَ-زر)اسم- واحد- مذکر- تعزیت- غمرازی- د عذر مفغن-

وزرا:(وُز-را)اسم- جمع- مذکر- د وزیر جمع-

وزروال:(وَ-زَر-وال)اسم صفت- واحد- مذکر- ځانګور- وزر لرونکے-

وزغنڼ:(وَز-غَن-ړَن)اسم- واحد- مذکر- د چېلی د وېښتو نه جوړ شوے څیز-

وزغونه:(وَز-غو-نه)اسم- د چېلو وېښتهٔ- وژغنه- وژغونه- وزغونے-

وزغونے:(وَز-غو-نے)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وزغونه-

وزګار:(وَز-ګار)صفت- بې روزګاره- فارغ- کار نهٔ لرونکے- بې کاره- بې کسبه-

وزګارتوب:(وَز-ګار-توب)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وزګارتیا-

وزګارتیا:(وَز-ګار-تیا)اسم- واحد- مؤنث- بې کاری- وزګاروالے- فرصت-

وزګارول:(وَز-ګا-ره-وَل)مصدر متعدی- وزګارول- بې کاره کول- فارغ کول-

وزګارون:(وَز-ګا-ره-وَن)حاصل مصدر- وګورئ وزګارول-

وزګارونکے:(وَز-ګا-ره-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وزګارول-

وزګارونګ:(وَز-ګا-ره-وَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وزګارول-

وزګارونه:(وَز-ګا-ره-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وزګارول-

وزګارېدل:(وَز-ګا-رې-دَل)مصدر لازم- فارغېدل- بې کاره کېدل-

وزګارېدن:(وَز-ګا-رې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ وزګارېدل-

وزګارېدنګ:(وَز-ګا-رې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وزګارېدل-

وزګارېدنه:(وَز-ګا-رې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وزګارېدل-

وزګارېدونکے:(وَز-ګا-رې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وزګارېدل-

وزګارېدهٔ:(وَز-ګا-رې-دهٔ)حاصل مصدر او د ماضی استمراری د واحد غائب صیغه- وګورئ وزګارېدل-

وزګرے:(وز-ګهٔ-رے)اسم- واحد- مذکر- چېلوکے- چېلے- بکرے- څېرلے-
وزله:(وز-له)اسم- واحد- مؤنث- بهانه- چاره- سبب- ذریعه- وسیله-
وزم:(و-زم)اسم- واحد- مذکر- (۱)قصد- اراده- (۲)سُر- ترنګ- ټنګ- وزن- خوش اوازی- طرز- (کاکړ)-
وزمکه:(وز-مهٔ-که)اسم- واحد- مؤنث- سپوږمی- وزمکی- وږمکه- جمع وزمکې-
وزمه:(وز-مه)لاحقه- وشمه- ډوله- وزن- طور- څېر- مثال- پهٔ شان- لکه مُلاوزمه- مُلاوشمه- ملاډولے وغېره-
وزن:(و-زن)اسم- واحد- مذکر- (۱)جاج- تول- اندازه- برابری- توازن- (۲)پړه- دَ کولالانو پړاوه- (۳)عزت- (۴)بوج- بار- (۵)مقدار- (۶)پهٔ علم عروض کښې دَ شعر بحر-
وزنه:(و-ز-نه)اسم- واحد- مؤنث- دَ شیشې یا دَ کاڼی نه جوړ شوے څیز چې عموماً دفترونو کښې پهٔ کاغذونو ایښوے شی- پېپروېټ-
وزنی:(وز-نی)اسم صفت- وزن لرونکے- وزن دار- دروند-
وزنے:(وز-نے)اسم صفت- مکار- بلاشیشک- چالاک-
وزه:(و-زه)اسم- واحد- مؤنث- چېلی- بیزه- بزه- جمع وزې-
وزیر:(و-زیر)اسم- واحد- مذکر- دَ بادشاه یا حکومت نائب- (۱)وزارت کونکے- نائب- مشیر- (۲)دَ شطرنج یوه مهره-
وزیره ګټه:(و-زی-ره-ګـ-ټه)اسم- واحد- مؤنث- دَ لاس دَ منځنی او کچنې ګټې ترمنځه ګټه-
وزیمه:(و-زي-مه)اسم- واحد- مؤنث- هغه چېلی چې وار یې راوړے وی-
وزئ:(و-زئ)اسم- واحد- مذکر- دَ کټې ګټې نه دَ کچنې ګټې پورې فاصله-
وژ:(وژ)اسم- واحد- مذکر- (۱)وز- بیز- چېلے- (۲)مارخور-
وژد:(وژد)اسم- واحد- مذکر- دَ خټې وبښتهٔ (دَ اُس وغېره)-
وژغنه:(وژ-غهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وزغونه-
وژغونه:(وژ-غو-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وزغونه-
وژغونیز:(وژ-غو-نیز)صفت- دَ ګېډ بزو دَ وړی نه جوړ شوے څیز-
وژل:(و-ژل)مصدر متعدی- قتل کول- مړکول- خون کول- وژنل- قتلول- وژلل-
وژلل:(وژ-لل)مصدر متعدی- وګورئ وژل-
وژلنه:(وژ-لهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وژلل-
وژلون:(وژ-لون)اسم- قتل- خون-
وژلونے:(وژ-لو-نے)اسم صفت- واحد- مذکر- قاتل- خونی- مړکونکے-مرګ کونکے-
وژله:(وژ-له)حاصل مصدر- وګورئ وژلهٔ-
وژلهٔ:(وژ-لهٔ)حاصل مصدر- قتل- وژنه- مړکونه- وژلون-
وژلے:(و-ژهٔ-لے)صفت مفعول- وګورئ وژل-
وژم:(و-ژم)اسم- واحد- مذکر- دَ خوشحالی لمحه یا دَ خوشحالی حصول- دلچسپی- زړهٔ راکښون-

وژمدار:(و-ژم-دار)اسم- واحد- مذکر- پاګل- مضطرب- بدحواس- لېونے- دیوانه-
وژمکی:(وژ-مه-کی)اسم- واحد- مؤنث- سپوږمی- وګورئ وږمی-
وژن:(و-ژن)اسم- واحد- مؤنث- پټې- پوټکے- څرمن- (دَ ګېډې یا چېلی)ګوډے-
وژن:(و-ژن)حاصل مصدر- وګورئ وژل-
وژنګ:(و-ژنګ)حاصل مصدر- وګورئ وژل-
وژنه:(و-ژهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وژل-
وژون:(و-ژون)اسم- مذکر- وګورئ وژلون-
وژونکے:(و-ژون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وژل-
وژه:(و-ژه)اسم- واحد- مؤنث- دَ خټې پله- جمع وژې-
وږد:(و-ږد)صفت- دَ لنډ ضد- پهٔ قد و قامت کښې اُوچت- یوه خاصه فاصله لرونکے- راکښلے-
وږدغوږے:(وُ-ږد-غو-ږے)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)څپرغوږے- غوږو- لوئ غوږے- چې غوږونه یې لوئ لوئ وی- (۲)خر- درازګوش- جمع وږدغوږی-
وږدوالے:(وُ-ږد-وا-لے)اسم- مذکر- طوالت- دَ یو څیز لهٔ یوهٔ سره تر بله سره فاصله-
وږدول:(وږ-دَ-ول)مصدر متعدی- راکښل- لوېول- طوالت ورکول-
وږدون:(وږ-دَ-ون)حاصل مصدر- وګورئ وږدول-
وږدونکے:(وږ-د-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وږدول-
وږدونه:(وږ-دَ-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وږدول-
وږدوهٔ:(وږ-دَ-وهٔ)حاصل مصدر- وګورئ وږدول-
وږسترګتوب:(وږ-ستر-ګـ-توب)اسم- واحد- مذکر- دَ اوږو سترګو لرنه- حرص- کمینه توب-
وږسترګے:(وږ-ستر-ګے)صفت- وږې سترګې لرونکے- لالچی- حرصی- حریص-
وږلومے:(وږ-لو-مے)اسم صفت- هغه وږے چې ډوډی پهٔ تلوار خوری-
وږم:(و-ږم)اسم- واحد- مذکر- سخا بوئ- خراب بوئ-
وږمکی:(وږ-مهٔ-کی)اسم- واحد جمع- مؤنث- وږمی- وږمکهٔ- سپوږمی- وژمکی- وزمکی-
وږمه:(وږ-مه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)یخه هوا- نرے باد- (۲)علامه-
وږمی:(وږ-می)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وږمکی-
وږیزه:(و-ږي-زه)صفت- (۱)هغه ښځه چې دَ اوو میاشتو اُمید یې وی- (۲)اسم- دَ ګېډې مالش-
وږی:(و-ږی)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ غاړه کښې دَ اچولو یو کالے- اوږی-
وږے:(و-ږے)صفت- واحد- مذکر- (۱)نهر- (۲)مشتاق- شوقی- شوقین-
وږے:(و-ږے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ غنمو، اربشو جوارو وغېره هغه خوشه

چې پکښې داني وي- (۲)دَ شهدو دَ موچيو دَ ګبين هغه حصه چې پکښې شهد وي- دَ ګبينهٔ پياڅه-

وس:(وِس)اسم- واحد- مذکر- (۱)طاقت- کوشش- زور- واک- اختيار- (۲)څيز-

وس:(وُس)متعلق فعل- اوس- دا وخت- دا ساعت- پهٔ دې وخت- في الحال-

وساطت:(وَ-سا-طت)اسم- واحد- مذکر- واسطه- ذريعه- وسيله-

وسائل:(وَ-سا-ئل)اسم- مذکر- دَ وسيله جمع-

وسپرين:(وِس-پرين)صفت- دَ اسپنې جوړ-

وسپن تـوړے:(وِس-پن-تـو-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ لوارانو يو اوزار- سوان- جمع وسپن توړي-

وسپنخړے:(وِس-پن-خهٔ-ړے)اسم- واحد- مذکر- دَ اسپنې زنګ- دَ اسپنې خيرے چې عام طور سره دَ زيړي-جولۍ پهٔ مرض کښې دَ دارو پهٔ طور استعماليږي- وګورئ سپنخړے-

وسپنخوره:(وِس-پن-خو-ره)اسم- مؤنث- دَ وسپنې زنګ- مچه خور- مچه خورک- جمع وسپنخورې-

وسپنکښ:(وس-پن-کښ)اسم- واحد- مذکر- آهنګر- لوهار-

وسپنه:(وِس-پهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- پهٔ معدني څيزونو کښې لهٔ ټولو زيات استعماليدونکے دات چې فولاد ترې جوړيږي- هغه عنصر چې فارموله يې ايف ائی(H)او اټمی شمېر يې ۲۶ دے- وګورئ اسپنه-

وست:(وست)اسم- واحد- مذکر- څيز- وس-

وسترے:(وست-رے)صفت- وروستو- وروستے- آخري-

وستکار:(وس-ته-کار)اسم- واحد- مذکر- هغه خلق چې دَ کلي پهٔ ښه بده کښې خدمت کوي او خپې پېشو کښې مهارت لري- استکار-

وستګير:(وست-ګير)اسم صفت- وس لرونکے-

وستل:(وَس-تل)اسم- واحد- مذکر- مقام- ځاې- دَ غونډې ځاې-

وستناک:(وَست-ناک)اسم صفت- خوشحاله- خوش طبع- چې خفه نهٔ وي-

وسته:(وس-ته)اسم- واحد- مؤنث- ډنډ- دَ اوبو تالاؤ-

وستيانے:(وَست-يا-نے)اسم- واحد- مذکر- ختميدونکے- آخري-

وسط:(وسط)اسم- واحد- مذکر- مينځ- مرکز-

وسطي:(وَس-طي)صفت- مينځنے- مرکزي-

وسعت:(وس-عت)اسم- واحد- مذکر- ارتوالے- پلنوالے- لويوالے-

وسکه:(وس-که)حرف ربط- ځکه نو- ځکه چې- ولې چې- بې شکه- خو- مګر-

وسکې:(وس-کې)حرف ربط- وګورئ وسکه-

وسله:(وس-له)اسم- واحد- مؤنث- اسلحه- دَ جنګ جګړې اوزار- ټوپک- تماچه- چاړهٔ- غرض هر هغه شے چې جنګ جګړه کښې پکار راوستے شي-

وسله وال:(وس-له-وال)اسم صفت- وسله لرونکے-

وسلېدل:(وس-لې-دل)مصدر متعدي- ماتېدل- شلېدل-

وسلېدن:(وس-لې-دن)حاصل مصدر- وګورئ وسلېدل-

وسلېدنګ:(وَس-لې-دنګ)حاصل مصدر- وګورئ وسلېدل-

وسلېدنه:(وَس-لې-دهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وسلېدل-

وسلېدونکے:(وَس-لې-دون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وسلېدل-

وسلېدهٔ:(وَس-لې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضي استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ وسلېدل-

وسمن:(وَس-من)اسم صفت- قادر- توانا- زورور- اختيارمن-

وسمه:(وَس-مه)اسم- واحد- مؤنث- دَ نيل پاڼې چې وېښتهٔ پرې تورلے شي- خضاب-

وسواس:(وِس-واس)اسم- واحد- مذکر- وهم- فکر- وسوسه- ويره- خطره- شک- ګمان- ګومان-

وسواسي:(وس-وا-سي)اسم صفت- وهمي- شکي- فکري- وسوسه لرونکے- خامخا ګومان کونکے-

وسوسه:(وَس-وَ-سه)اسم- واحد- مؤنث- خيال- شک- وهم- ګومان-

وسه:(وَ-سه)اسم- واحد- مؤنث- باران-

وسه:(وَ-سه)اسم- واحد- مؤنث- توان- طاقت-

وسه:(وَ-سه)اسم- واحد- مؤنث- اډانه- دَ کوټې دَ چت دَ پاسه اچولی شوی لرګی-

وسياک:(وس-ياک)اسم- واحد- مذکر- دَ وساک مياشت- دَ هندي شمسي کال دروميې مياشت چې ۱۵ اپريل، ۱۴ مئی سره مطابق وي-

وسيع:(وَ-سيع)اسم صفت- ارت- فراخ- پلن-

وسيله:(وَ-سي-له)اسم- واحد- مؤنث- سوب- ذريعه- سبب- اسره- طفېل- ضمانت- رسوخ- جمع وسائل-

وسيله دار:(وَ-سي-له-دار)اسم صفت- وسيله لرونکے-

وسيله ناک:(وَ-سي-له-ناک)اسم صفت- وسيله دار- طمع دار-

وسيم:(وَ-سيم)اسم صفت- ښکلے- ښائسته- ړولے-

وسۍ:(وَ-سۍ)اسم- واحد جمع- مؤنث- اوسۍ- دَ بزې دَ خاندان يو ځنګلي ځناور- شاعري کښې دَ ښکليو سترګو دَ پاره مشهور دے-

وش:(وش)اسم- واحد- مذکر- (۱)وده- ترقي- (۲)زهر- (۲- حرف) دَ درد او غم ښکاره کولو حرف-

وشتمار:(وشت-مار)صفت- (۱)تحريک پېدا کونکے- بېدارونکے- (۲)ټوقمار- وشتې کونکے-

وشتول:(وش-ته-ول)مصدر متعدي- رابلل- بېدارول- تحريک ورکول-

وشتون:(وش-ته-ون)حاصل مصدر- وګورئ وشتول-

وشتونګ:(وش-ته-ونګ)حاصل مصدر- وګورئ وشتول-

وشتونکے:(وش-ته-وون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وشتول-

وشتونه:(وش-ته-وهٔ-نه)حاصل مصدر- وګورئ وشتول-

وشته:(وش-ته)اسم- واحد- مؤنث- ټوقه- مسخره- مزاح- جمع وشتې-

وشتي:(وشی-تي)اسم صفت- ټوقي- ټوقمار- وشتمار- ملنډي- مسخراچي-

وشم:(وَ-شِم)لاحقه- طور- ځنګه چې- لکه- په شان-
وشن:(وَ-شَن)صفت- بالغ کېدو ته نزدې-
وشه:(وُ-شه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)تانده څانګه- (۲)شهتير-
وښ:(وښ)اسم- مذکر- زهر-
وښبانه:(وښ-با-نه)اسم- واحد- مؤنث- سبزه زار- شينکي- چمن- ورشو-
وښخور:(وښ-خور)اسم صفت- ګيا خوړونکے- واښه خوړونکے-
وښکالے:(وښ-کا-لے)اسم- واحد- مذکر- دَ انګورو غُنچک- د انګورو خوشه- واښکے- کنګوړے- سپېلنے- جمع وښکالي-
وښکل:(وښ-کَل)مصدر متعدي- وکښل- ايستل- بهر کول- حل کول (سوال)- راښکل (کرښه)- وباسل- وکاږل-
وښکلے:(وښ-کَه-لے)اسم مفعول- جمع وښکلي- مؤنث وښکلې- وګورئ وښکل-
وښکن:(وښ-کَن)حاصل مصدر- وګورئ وښکل-
وښکنه:(وښ-کَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ وښکل-
وښکونکے:(وښ-کُون-کے)اسم فاعل- جمع وښکونکي- مؤنث وښکونکې- وګورئ وښکل-
وښکه:(وښ-که)اسم- واحد- مؤنث- وښکه- رود- جمع وښکې-
وښکے:(وښ-کے)اسم- واحد- مذکر- (۱)دَ خُلې يو طرف- (۲)دَ خُلې قبضه- کوم ځاے چې دواړه شونډې يو بل سره يو ځاے کېږي-
وښلن:(وښ-لن)اسم صفت- واحد- مذکر- په اوښو ککړ-
وښند:(وَ-ښَند)اسم صفت- واحد- مذکر- (۱)تاند- ښېرازه- (۲)هغه سړے چې دَ ملا کوروالے نهٔ لري-
وښورے:(وَ-ښو-رے)اسم صفت- دَ چارپاے بچے چې تازه تازه دَ پيو نه منع شوے وی او په مزه مزه لږ لږ زاښهٔ خوري-
وښېدل:(وَ-ښې-دَل)مصدر متعدي- وښی وښی کېدل- کمزورے کېدل-
وښېدن:(وَ-ښې-دَن)حاصل مصدر- وګورئ وښېدل-
وښېدنګ:(وَ-ښې-دَنګ)حاصل مصدر- وګورئ وښېدل-
وښېدونکے:(وَ-ښې-دُون-کے)اسم فاعل- واحد- مذکر- وګورئ وښېدل-
وښېدنه:(وَ-ښې-دَه-نه)حاصل مصدر- وګورئ وښېدل-
وښېدهٔ:(وَ-ښې-دهٔ)حاصل مصدر او دَ ماضی استمراری دَ واحد غائب صيغه- وګورئ وښېدل-
وښے:(وَ-ښے)اسم- واحد- مذکر- کړه- کنګڼ- بنګړے- ګجره- بامو- مټکې-
وصاف:(وَص-صاف)اسم- واحد- مذکر- ثناءخوان- ډېر صفت کونکے- (م- عربی)-
وصال:(وِ-صال)اسم- واحد- مذکر- (۱)ملاقات- يو ځاے کېدنه- (۲)مړکېدنه- ختمېدنه- دَ تصوف په اصطلاح کښې په وحدت کښې فنا کېدنه- (م- عربی)-
وصف:(وَ-صَف/وَصف)اسم- واحد- مذکر- صفت- ښهٔ والے- ستائينه- تعريف- خوبی- (م- عربی)-

وصفی:(وَ-صَ-فی)اسم صفت- واحد- مذکر- تعريفی- صفتی- (م- عربی)-
وصل:(وَ-صل/وَصل)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وصال- دَ جدايي ضد- (م- عربی)-
وصلت:(وَص-لَت)اسم- واحد- مذکر- وګورئ وصال- (م- عربی)-
وصيت:(وَ-صي-يَت)اسم- واحد- مذکر- (۱)نصيحت- (۲)دَ خپل مال جائېداد يا تعلقاتو په باره کښې لهٔ مرګه مخکښې يا په سفر دَ تللو په وخت پرېښوے شوے هدايت چې عمل پرې دَ مرګه پس کولے شي-
وضاحت:(وَ-ضا-حَت)اسم- واحد- مذکر- رڼه خبره کونه- تشريح کونه- تفصيل بيانونه-
وضع:(وَ-ضَع)اسم- واحد- مؤنث- صورت- شکل- حالت-
وضع حمل:(وَ-ضع-حَ-مل)اسم- واحد- مذکر- دَ ماشوم پېدا کېدنه-
وضعدار:(وَ-ضع-دار)صفت- عاجز- عاجز طبع- په يو حالت خوښ-
وضعداری:(وَ-ضع-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- دَ وضعدار کېدو حالت-
وضعيت:(وَض-عی-يَت)اسم- واحد- مذکر- کېفيت- حالت-
وضو:(وَ-ضُو)اسم- واحد- مؤنث- اودس- دَ نمانځهٔ دَ پاره په شريعت کښې مقرر اندامونه وينځنه-
وطن:(وَ-طَن)اسم- واحد- مذکر- علاقه- دَ پېدائش ځاے- مُلک- قوم- دَ يو قوم په ګټه دَ وسېدو ځاے او علاقه-
وطن پال:(وَ-طَن-پال)صفت- وګورئ وطن پرست- (افغانستان)-
وطن پالنه:(وَ-طَن-پا-لهٔ-نه)اسم- واحد- مؤنث- وګورئ وطن پرستی-
وطن پرست:(وَ-طَن-پَه-رست)صفت- وطن سره مينه کونکے- دَ وطن خدمت کونکے- وطن سره پت پالونکے-
وطن پرستی:(وَ-طَن-پَه-رس-تی)اسم- واحد- مؤنث- دَ وطن پرست کار- دَ وطن پرست نظريه، فکر او عمل-
وطن دار:(وَ-طَن-دار)صفت- دَ يو وطن سره تعلق لرونکے- دوه يا زيات کسان چې دَ يو وطن وی-
وطن داری:(وَ-طن-دا-ری)اسم- واحد- مؤنث- وطن سره پت پالنه- دَ وطن خلقو سره مينه لرنه-
وطن دوست:(وَ-طَن-دوست)صفت- وطن دوستی کونکے- وطن پرست-
وطن دوستی:(وَ-طَن-دوس-تی)اسم- مؤنث- وګورئ وطن پالنه-
وطنی:(وَ-طه-نی)صفت- (۱)وطن سره تعلق لرونکے- (۲)دېسی-
وطی:(وَ-طی)اسم- واحد- مؤنث- غو- جماع- کوروالے- اصل معنیٰ دَ پښو لاندې کول-
وظائف:(وَ-ظا-ئف)اسم- جمع- دَ وظيفې جمع- وګورئ وظيفه-
وظيفه:(وَ-ظی-فه)اسم- واحد- مؤنث- (۱)دَ خداے ذکر- (۲)هغه خوراک چې طالبانو ته ورکولے شي- (۳)منصبی فرض- (۴)سکولونو کالجونو وغېره کښې طالب علم ته ورکېدونکے رقم- دَ يو انجمن يا ادارې لهٔ خوا مستحق کسانو ته ورکېدونکے رقم- (م- فارسی)-

ئ" (ځی-رل)، "ې"(مې-ره-وَل)، "ی"(پيا-لی)، "ے"(تن-دے) تفصيل دَ پاره وګورئ تشريحات صفحه ۱

